# تفسیر خیر کثیر

پشتو ترجمه

# تفسیر ابن کثیر

مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری

مترجمین: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، وعبد الکریم صدیقی وقاری امیر نواز

## جلد نمبر (۵)

**تسهیلات از شاه فیصل**

(۱) د قرآنی آیاتونو ټکی په ټکی او روانه ترجمه
(۲) د احادیثو تخریج
(۳) د فقهی مسئلو کښې مسلک حنفی وضاحت
(۴) مناسب عنوانات ورکول

خپرونکي
فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور
موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم : تفسیر خیر کثیر ترجمه تفسیر ابن کثیر
مؤلف: حافظ عماد الدین اسماعیل بن عمر بن ابن کثیر الدمشقی المتوفی ۷۷۴ هجری
خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنگی
موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

د ملاویدو پتې:- د فیصل کتب خانې نه سوا
مکتبه روغانیول جلال آباد
مکتبه رحیمی خوست
نعمت کتب خانه کابل
انتشارات علامه تفتازانی هرات وکابل
صداقت کتب خانه قندهار وکابل
قدرت کتاب فروشی کابل بن ار
علمی کتب خانه کردیز
مکتبه علمیه اکوړه ختك
دینی کتب خانه تیمرګره ره
فلاح کتب خانه جلال اباد
مکتبه فریدیه خوست
دیوبند کتب خانه خوست
جدید رشیدیه کتب خانه کابل
مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
مکتبه نعمانیه غزنی
مکتبه رحمانیه قندهار
امیر حمزه کتب خانه قندهار

# تسهیل وتکمیل

# معارف القرآن [ پښتو ]

پښتو ترجمه او کمپوزنګ

مرکز التحقیق والعلوم العصریة

زیر نګرانی: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس،

امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

## تسهیلات وتکمیلات از شاه فیصل

① د خلاصه تفسیر په مینځ کښې د آیاتونو جملې لګول مثلاً تول تعریفونه الله تعالی لره دی د دې نه وراندې ((الحمد لله)) لګول.

② د یوې جملې د تفسیر نه وړاندې په ،،قوله تعالی،، سره د هغې تفسیر شروع کول

③ د شیخ الهند رحمة الله په ځائې د آسانتیا د پاره د مولانا شاه فیصل د فهم القرآن تک په تک او رواله ترجمه لګول

④ په معارف کښې د عربۍ او فارسۍ شعرونه په پښتو کښې ترجمه کول

⑤ په کومو آیاتونو کښې چې مفتي صاحب اختصار کړې دې هلته د نورو تفاسیرونو نه تفسیر نقل کول او په لاندې حاشیه کښې لګول

په آخری مراحلو کښې دې انشاء الله دیر زر به ستاسو د الماړو زینت جوړ شی.

خورونکې

فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

موبائیل: ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

| آیاتونه | سورة الشعراء مكية وهي مأتتان وسبع وعشرون آية واحد عشر ركوعا | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۲۷ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ۱۱ |

طٰسٓمّٓ ۞ ۱ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۞ ۲ لَعَلَّكَ بَاخِعٌ

ط س م | دا | آیتونه دکتاب | صفا بیانونکی دی | شاید چې ته | هلاکونکې یې |

ط س میم ، دادیو واضح کتاب آیتونه دی | داسې ښکاری چې

نَّفْسَكَ اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۞ ۳ اِنْ نَّشَاْ نُنَزِّلْ

دخان خپل | په دې چې نۀ کیږی دوئ | ایمان راوړنکی | که اوغواړو مونږه | نو نازل به کړو مونږه |

ته ددې خلقود ایمان نه راوړ په غم کښې خپل ژوند بائیلې | که مونږ اوغواړو نو دوئ ته

عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ ۞ ۴

په دوئ باندې | داسمان نه | یوه نښه | نوشي به | څټونه ددوئ | هغه نښې ته | غاړه اېښودونکی

به داسمان نه یوه لویه نښه راولیږو | .........نو ددوئ څټونه بۀ ورته ټیټ شي

وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنَ الرَّحْمٰنِ مُحْدَثٍ اِلَّا كَانُوْا عَنْهُ

اونۀ راځي دوئ ته | یو نصیحت | دطرفه درحمان نه | نوې | مګر | وی دوئ | دهغې نه |

اودوئ ته چې کله هم د رحمان ذات د طرفه څه نصیحت راغلې دې | نو دوئ ترینه

مُعْرِضِيْنَ ۞ ۵ فَقَدْ كَذَّبُوْا فَسَيَاْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا

مخ اړونکی | اوس دروغ اوګنړو دوئ (دا) | پس زر به راشی دوئ ته | خبرونه (حقیقت) | دهغه څیز

مخونه اړوی | نو دوئ خو (قرآن) دروغ اوګنړلو | ډیر زر به ورته دهغې حقیقت معلوم شي

كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۞ ۶ اَوَلَمْ يَرَوْا اِلَى الْاَرْضِ كَمْ

چې وو دوئ | چې په هغې پورې | به ئې ټوقې کولې | آیا نۀ ګوری دوئ | دې زمکې ته | چې څومره

چې دوئ به ورپورې خندګانې کولې | ...........آیا دوئ زمکې ته نه ګوری | چې مونږ

اَنْۢبَتْنَا فِيْهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيْمٍ ۞ ۷ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

زرغونه کړې دی مونږه | په دې کښې | دهر قسم ښه ښۀ (بوټونه) | بیشکه | په دې کښې |

په دې کښې څومره ښه بوټی رازرغون کړی دی | یقینًا په دې کښې (خلقو د پاره)

لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۞ ۸ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ

خامخا یوه نښه ده | اونۀ دی | اکثر ددوئ نه | ایمان راوړونکی | او بیشکه رب ستا | خامخا هغه

نښه ده | ................اوپه دې اکثر خلق ایمان نه راوړی | اوبیشکه ستا رب

| الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ ۝ | وَاِذْ | نَادٰى | رَبُّكَ | مُوْسٰٓى | اَنِ ائْتِ | الْقَوْمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| غالب دئ | مهربانه دئ | او كله چي | آواز اوكړو | رب ستا | موسى ته | چي لاړشه ته | قوم |

غالب مهربان دئ۔ اوهغه وخت (يادكړه چي) ستارب موسى ﷺ ته آواز اوكړو چي ته دغې

**قوله تعالى:- طٰسٓمّٓ ۝**

(لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ)نبی کریم صلی الله علیه وسلم تسلی ده:۔ دمالك ﷺ روايت شوی تفسيركښي ددې نوم سورة جامعه دي.دحروف مقطعه بحث دسورة بقره دتفسيرپه شروع كښې تيرشوې دې.بيا فرمان دې چه داآياتونه د قرآن مبين دی.چه دا ډيرواضحه بالكل صفا اودحق اوباطل، ښه اوبد په مينځ كښې فيصله اوفرق كونكې دې.ددې خلقوايمان نه راوړلوسره (اې نبیﷺ) تاسومه خفه كيږئ.لكه چه بل ځائې ارشاددې ﴿فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ عَلَيْهِمْ حَسَرٰتٍ﴾ ته ددوی په ايمان نه راوړلوباندې غم اوافسوس مه كوه.په بل آيت كښې دی﴿لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ﴾چرته داسې اونه شی چه ته دوی پسې خپل ځان هلاك كړې.چونكه مونږدا نه غواړو.چه خلقوباندې په ايمان زبردستى اوكړئ.كه دامونږ غوښتلې نوځه داسې ځيزبه مود آسمان نه نازلولې چه دوی به په ايمان راوړلوباندې مجبوره كيدل.خومونږ ددوی اختياری ايمان غواړوپه بل آيت كښې دي﴿وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ مَنْ فِى الْاَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا﴾كه ستارب غوښتلې نودمخ د زمكې ټول خلق به مؤمنان شوی وو.آياته به په خلقوباندې زبردستى كوې؟ چه ترڅو پورې دوی مؤمنان نه شی.په بل آيت كښې دی كه ستارب غوښتلې نوټول خلق به ئې يوامت جوړكړې وې.دا اختلاف ددين او مذهب هم دهغه مقرركړې شوې دې.اوددې حكمت ښكاره كونكې دې.هغه رسولان راوليږل، كتابونه ئې نازل كړل.خپل دليل اوحجت ئې قائم كړو.انسان ئې په ايمان راوړلو اونه راوړلوكښې اختيارمند كړواوس چه په كومه لاره دې غواړی روان دې شی.چه كله هم يوآسمانى كتاب نازل شو.ډيروخلقو د هغې نه مخ واړولو.ستا دپوره آرزو باوجود به اكثرخلق بياهم بې ايمانه وی.

**قوله تعالى:- فَقَدْ كَذَّبُوْا فَسَيَاْتِيْهِمْ اَنْۢبٰٓؤُا مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝**

**د آقادروغژن ګڼړونكونه به انتقام اخستلې شی:** په سورة يسين كښې ئې اوفرمائيل.په بندګانوباندې افسوس دې.دوی ته چه څوك هم رسول راغې دوی دهغه پورې ټوقې اوكړلې.په بل آيت كښې دی.چه مونږپرله پسې پيغمبران اوليږل ليكن كوم اُمت ته چه دهغوی رسول راغې.هغوی دخپل رسول په دروغژن ګڼړلوكښې كمی اونكړلو دلته ئې هم ددې نه پس فرمائيلې دی.ددې نبی آخرالزمانﷺ قوم هم هغه لره دروغژن كړې دې.دوی ته به هم ددی بدله ډيرزر ملاوشی.دې ظالمانوته به ډيره زرمعلومه شی.چه دوی په كومه لاره روان دی.بياخپل شان وشوكت،قدرت اوعظمت،عزت او رخصت بيانوی.چه دچاكلام ته، اودچا قاصدته چه تاسو دروغژن وايئ.هغه دومره لوئې قدرت والا اوقيوم دې.چه هم هغه داټوله زمكه جوړه كړې ده.اوپه دې كښې ئې ساه لرونكې اوبې ساه ځيزونه پيداكړی دی.فصلونه، ميوې، باغونه اوګلونه ټول دهغه پيداوښت دې.شعبیؒ فرمائی.چه خلق دزمكې پيداوار دې.په دی كښې چه كوم جنتيان دی هغه عزت مندې.اوكوم چه دوزخيان دی هغه ذليل دی[۱]په دې كښې د قدرت دخالق ډيرې نخښې دی.چه هغه فراخه زمكه او اوچت آسمان پيداكړو.ددې باوجود هم اكثر خلق ايمان نه راوړی.بلكه اُلټه دهغه نبيانوته دروغژن وائی.دهغه كتابونه نه منی.دهغه دحكمونوخلاف كوی.دهغه منع كړې شوی كارونوكښې شوق ساتی.بيشكه ستارب هرځيزباندې غالب دې.دهغه په وړاندې مخلوق عاجزدې.بياهم هغه په خپلوبندګانوباندې مهربان دې.دنافرمانو په عذاب كښې جلتی نه كوی.

---

[۱] الدرالمنثور: ۲۸۹/۶.

تاخیراومهلت ورکوی.چه دوی دخپلو بدوعملونونه منع شی.لیکن چه بیاهم دوی په صحیح لاره نه راخی.نودوی سختی سره رانیسی.اوددوی نه پوره انتقام اخلی.البته چه څوك توبه اوکړی.اوهغه طرف ته متوجه شی.اودهغه فرمانبردارشی.هغه په هغه باندې دهغه دمورپلارنه هم زیات رحم اوکرم کوی!.

وَاِذْ نَادٰی رَبُّكَ مُوْسٰٓی اَنِ ائْتِ الْقَوْمَ

| او کله چې | آواز اوکړو | رب ستا | موسی ته | چې لاړشه ته | قوم |

| اوهغه وخت (یادکړه چې) ستارب موسی ﷺ ته آواز اوکړو | چې ته دغې

الظّٰلِمِیْنَ ۝ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ؕ اَلَا یَتَّقُوْنَ ۝ قَالَ رَبِّ اِنِّیْٓ

ظالم ته | قوم دفرعون ته | آیا نهٔ یریږی هغوئ | اوونیل موسی | اے ربه زما | بیشکه زهٔ

ظالمانو ته یعنی دفرعون قوم ته ورشه | آیا هغوئ خان دعذاب نه بچ کوی ؟ | موسی ﷺ اوونیل چې

اَخَافُ اَنْ یُّکَذِّبُوْنِ ۝ وَیَضِیْقُ صَدْرِیْ وَلَا یَنْطَلِقُ لِسَانِیْ

یریږم | چې دروغژن به اوګڼړی مالره | او تنګیږی | سینه زما | اونهٔ چلیږی | ژبه زما |

اتی زماربه! زه ددې خبرې نه ویریږم | چې هغوئ بهٔ مې دروغژن اوګڼړی | اوزما زړه تنګیږی

فَاَرْسِلْ اِلٰی هٰرُوْنَ ۝ وَلَهُمْ عَلَیَّ ذَنْبٌ فَاَخَافُ

نو اولیږه (رسالت) | هارون ته | اوده دهغوئ په ما باند | ګناه (جرم) | نو زهٔ یریږم |

اوزما ژبه نه چلیږی | نو هارون ته هم وحی اولیږه | اود هغوی په ما باندې یو جرم دعوی ده | زهٔ یریږم

اَنْ یَّقْتُلُوْنِ ۝ قَالَ کَلَّا ۚ فَاذْهَبَا بِاٰیٰتِنَآ اِنَّا

چې قتل به کړی مالره | اوونیل الله | هرګز نهٔ | پس لاړشئ دواړه | دنښو زمونږ سره | بیشکه مونږه

چې هسې نه هغوئ ما قتل کړی | الله اوفرمائیل چې هیڅکله نه | تاسو دواړه زما حکمونه یوسئ | مونږ

مَعَکُمْ مُّسْتَمِعُوْنَ ۝ فَاْتِیَا فِرْعَوْنَ فَقُوْلَآ اِنَّا

ستاسو سره | اوریدونکی یو | پس ورشئ دواړه | فرعون ته | نو ورته اووایئ دواړه | بیشکه مونږه

تاسو سره یو | هرڅه اورو | نو تاسو دواړه فرعون ته ورشئ | او ورته اووائی چې مونږ دواړه د

رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝ اَنْ اَرْسِلْ مَعَنَا بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ ۝ قَالَ

استاذی | درب العالمین یو | چې اولیږه | زمونږ سره | بنی اسرائیل | اوونیل فرعون

رب العالمین پیغمبران یو | او ته مونږ سره بنی اسرائیل پریږده | (چې خپل وطن فلسطین ته لاړشو)

اَلَمْ نُرَبِّكَ فِیْنَا وَلِیْدًا وَّلَبِثْتَ

ایا نه وې پاللې مونږ ته | په کور زمونږ کښې | په وړوکوالي (ستا کښې) | او وخت تیر کړې تا |

(فرعون) اوونیل چې ایا مونږ په وړوکوالی کښې ستا پالنه دلته نه وه کړې | او تا دخپل عمر

فِیْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِیْنَ ۝ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِیْ فَعَلْتَ

په کور زمونږ کښې | دعمر ستانه | ډیر کلونه | او بیا اوکړو تا | کار خپل | هغه | چې اوکړو تا

څوکلونو مونږسره یو ځائې نه وو تیرکړې | او تا هغه کار هم کړې وو کوم چې دې نکړې وو (زمونږ سرې

| |
|---|
| وَاَنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ (۱۹) قَالَ فَعَلْتُهَآ اِذًا وَّاَنَا |
| اوته \| دناشكرونه ني \| اوونيل موسى \| كړي وو ما هغه كار \| كله چې وم زه \| |
| دي قتل كړي وو \| او ته ډير ناشكره ني \| (موسى ؑ) اوونيل چې بيشكه ما هغه وخت دا حركت كړي وو \| اوما |
| مِنَ الضَّآلِّيْنَ (۲۰) فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ |
| دناپو هانونه \| نو اوتښتيدم زه \| ستاسو نه \| هر كله چې \| اويريدم زه ستاسو نه \| |
| نه غلطي شوي وه \| نوزه تاسو نه ويريدم \| او اوتښتيدم \| بيا زما رب |
| فَوَهَبَ لِيْ رَبِّيْ حُكْمًا وَّجَعَلَنِيْ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ (۲۱) |
| نو راكړه ماته \| رب زما \| حكم (پوهه پيغمبرى) \| او جوړني كړم زه \| درسولانونه \| |
| ماته دانائي راكړه \| ............او زه ئې په پيغمبرانو كښې شامل كړم |
| وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ اَنْ عَبَّدْتَّ |
| او دغه نعمت \| چې ته احسان كوې دهغې \| په مابانده \| دادې چې تاغلامان كړى وو \| |
| او دا (زما د پرورش) احسان چې ته په ما كوې \| (ددې وجه داده) چې تا بنى اسرائيل غلامان |
| بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ (۲۲) قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ (۲۳) |
| بني اسرائيل \| اوونيل فرعون \| او څه څيز دې رب العالمين \| |
| جوړ كړي دي \| فرعون اوونيل چې د خلقو رب څوك دې ؟ \| |

قوله تعالى:- وَاِذْ نَادٰى رَبُّكَ مُوْسٰى

**لارشه فرعون طرف ته، موسى ؑ ته دالله ﷻ حكم:-** الله تعالى چه خپل بنده اوخپل رسول اوخپل كليم موسى ؑ ته كوم حكم وركړې وو. هغه بيانيږى. چه دطورښى طرفنه ئې هغه ته آواز وركړو. هغه سره ئې كلام اوكړو. هغه ئې خپل منتخب شوې رسول جوړ كړو اوهغه ئې فرعون اودهغه قوم طرف ته اوليږلو. چه هغه په ظلم باندې كلك وو. اودالله تعالى د ويرې او پرهيزګارئ نوم هم په هغه كښې نه وو پاتې.

قوله تعالى:- قَالَ رَبِّ اِنِّيْٓ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ (۱۲)

**دموسى ؑ عذر او دهغه جواب:-** حضرت موسى ؑ خپلې څه كمزورئ دالله تعالى په مخكښې بيان كړلې. چه هغه دالله ﷻ په مهربانئ سره لرې كړې شوې. لكه چه په سورة طه كښې دموسى ؑ د سوالاتو نه پس دى (قَالَ قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يٰمُوْسٰى) يعنى اې موسى ؑ استاسو لسوالونه پوره كړې شول. دلته د موسى ؑ عذردا بيان شوې دې. چه ماته ويره ده چه هغوى به ما دروغژن كړى. زما سينه تنګه ده. زما ژبه كښې تتوالې دې. نو هارون هم ماسره نبى جوړ كړې. اوما په هغوى كښې يو قبطى بغير دجرم نه وژلې وو. چه دهغې په وجه مامصر پرينبودلو. اوس په ورتلو كښې زه ويريږم. چه چرته هغه زمانه بدله وانخلى. الله تعالى جواب وركړو. چه دهيڅ يوې خبرې ويره مه ساته. مونږ ستا رور ستا ملګرې جوړوو. اوتاته روښانه دليل دركوو. هغوى به تاسو ته هيڅ تكليف نه رسوى. زما وعده ده چه تابه غالب كوم. ته زما آياتونه څان سره خو يوسه. زما مدد به تاسو سره وى. زه ستا اودهغوى ټولې خبرې اورم. لكه چه فرمان دې. چه زه تاسو دواړو سره يم. اورم وينم. زما حفاظت، زما مدد، زما نصرت اوتائيد تاسو سره دې. ته فرعون ته لاړشه اوپه هغه باندې خپل رسالت ښكاره كړه. لكه چه بل آيت كښې دى. چه هغه ته اووايه چه په مونږ دواړو كښې هريو دالله رسول دې. فرعون ته ئې اووئيل چه ته مونږ سره بنى اسرائيل اوليږه. هغوى دالله تعالى مؤمنان

بندګان دي.تاهغوی خپل غلامان جوړکړي دي.اوهغوی دې کمزوري کړي دي.ذلت سره دهغوی نه کارونه اخلې.اوهغوی دې په عذابونوکښې ګیرکړي دي.اوس هغوی آزادکړه.

**قوله تعالی:- قَالَ اَلَمۡ نُرَبِّكَ فِيۡنَا وَلِيۡدًا**

**دفرعون دموسی عليه السلام پیغام ته په سپک نظر کتل او د موسی عليه السلام جواب:** دحضرت موسی عليه السلام داپیغام فرعون ډیرپه سپکوالي سره واورېدۀ.اوهغه نې اورټلو.وې وئیل چه آیاته هغه نه یې؟ چه ته مونږخپل خان سره اوساتلې.ترډیرې مودې پورې مونږستا پرورش کولو.ددې احسان بدله تادا راکړه.چه هم په مونږکښې دې یوکس اووژلو.او زمونږناشکري دې اوکړه.ددې په جواب کښې حضرت کلیم الله اوفرمائیل.داټولې خبرې دنبوت نه مخکښې دي.چه هغه وخت زه پخپله ناخبره ووم.دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه په قراءت کښې د (مِنَ الضَّآلِّيۡنَ) په ځاني (مِنَ الْجٰهِلِيْنَ) دي.حضرت موسی عليه السلام ورته اوفرمائیل. هغه رومبې حال ختم شو. دويم وخت راغې.الله تعالی زۀ خپل رسول جوړکړې تاته رالیږلې یم.اوس که ته زما وینا اومنې.نو سلامتي به بیاموميې.اوکه زما نافرمانی کوې نوهلاك به شې.دهغه خطانه پس چه زۀ ستا نه اوتښتیدم.دهغې نه پس دالله تعالی دافضل په ما باندې اوشو.اوس زړې قصې مه یادوه. زما په آواز باندې لبیك اووایه.او واوره اکه تایواځې په ما باندې احسان کړې دې نوزماپه هريوقوم باندې تا ظلم اوزیاتې کړې دې. هغوی دې ټول غلامان جوړکړي دي.زماسره دا سلوك اوهغوی سره دا زیاتې او بدسلوکی به برابر برابرشي!

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | قَالَ فِرۡعَوۡنُ | وَمَا رَبُّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿٢٣﴾ | قَالَ | | |
| | اووئیل فرعون | او څه څیز دې رب العالمین | اووئیل موسی | | |
| فرعون اووئیل چې د خلقو رب څوک دې ؟ | موسی عليه السلام جواب ورکړو | | | | |
| رَبُّ السَّمٰوٰتِ | وَالۡاَرۡضِ | وَمَا | بَيۡنَهُمَا ؕ | اِنۡ كُنۡتُمۡ | |
| رب داسمانونو دې | او دزمکې دې | او هغه | چې په منځ ددواړو کښې دی | که یئ تاسو | |
| چې هغه داسمانونو او زمکې اوددې دواړه په مینځ د هرڅه مالك دې | که چرې تاسو | | | | |
| مُّوۡقِنِيۡنَ ﴿٢٤﴾ | قَالَ | لِمَنۡ | حَوۡلَهٗۤ | اَلَا تَسۡتَمِعُوۡنَ ﴿٢٥﴾ | |
| یقین کونکی | اووئیل فرعون | هغه چاته | چې چاپیره وو دهغه نه | ایا نۀ اورئ تاسو | |
| یقین کوئی | فرعون خپل (ګیرچاپیره ناستو) درباریانو ته اووئیل اچې تاسو واوریدل ؟ | | | | |
| قَالَ | رَبُّكُمۡ | وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ | الۡاَوَّلِيۡنَ ﴿٢٦﴾ | قَالَ | |
| اووئیل موسی | (هغه) رب ستاسو دې | او رب دپلارانو ستاسو دې | چې اولنی وو | اووئیل فرعون | |
| موسی عليه السلام ورته اووئیل چې هغه ستاسو هم رب دې | اوستاسود پلار نیکه هم رب دې | فرعون ووئیل | | | |
| اِنَّ | رَسُوۡلَكُمُ | الَّذِيۡۤ | اُرۡسِلَ | اِلَيۡكُمۡ | لَمَجۡنُوۡنٌ ﴿٢٧﴾ |
| بیشکه | رسول ستاسو | هغه | چې رالیږلې شوې دې | تاسو ته | خامخا لیونې دې |
| چې ستاسو دا رسول چې تاسوته راغلې دې | .................. دا خو لیونې دې | | | | |
| قَالَ | رَبُّ الۡمَشۡرِقِ | وَالۡمَغۡرِبِ | وَمَا بَيۡنَهُمَا ؕ | اِنۡ كُنۡتُمۡ | |
| اووئیل موسی | رب دمشرق | او دمغرب دې | او هغه چې په منځ ددواړو کښې دی | که یئ تاسو | |
| موسی عليه السلام اووئیل هغه (الله تعالی) د مشرق او مغرب او څه چې ددې په مینځ کښې دی | د ټولو رب دې | | | | |

| |
|---|
| تَعۡقِلُوۡنَ۝ |
| چې دعقل نه څه کار اخلئ ا |
| که تاسو دعقل نه کار اخلئ ا |

**قوله تعالی:- قَالَ فِرۡعَوۡنُ وَمَا رَبُّ الۡعٰلَمِيۡنَ۝**

**د فرعون د ربوبیت دعوی** -چونکه فرعون خپل رعیت (ماتحت)پې لارې کړې وو.اوهغوی ته یې یقین ورکړې وو.چه معبود اورب صرف زه یم.زما نه سواهیڅوك نشته.دهغوی ټولوهم داعقیده وه.کله چه حضرت موسیﷺ اوفرمائیل چه زه درب العالمین رسول یم.نوهغه اوونیل رب العالمین څه څیزدې؟ مقصدهم داوو.چه زما نه سواڅوك رب شته هم نه.ته چه کوم څه وائې بالکل غلط دی.

**درب العالمین شان دموسیﷺ په ژبه**.لکه چه په بل آیت کښې دی.چه هغه تپوس اوکړو (فَمَنۡ رَّبُّكُمَا يٰمُوۡسٰى) اې موسی! ستاسودواړو رب څوك دې؟ددې په جواب کښې کلیم الله اوفرمائیل.چاچه دهریو پیدائش کړې دې.اوڅوك چه دټولو هادی دې.دلته یاد ساتئ چه بعضې منطقیان دلته غلط شوی دی اوونیلی ئې دی.چه د فرعون سوال دالله تعالی دماهیت نه وو.دابالکل غلط دی. ځکه چه دماهیت تپوس خوبه ئې هله کولې.کله چه مخکښې دوجود قائل وې.هغه خو دسره دالله تعالی دوجود منکر وو. خپله هم دا عقیده به ئې ښکاره کوله.اوپه یویو باندې به ئې دا عقیده منله.اګرچه ددې خلاف حجت او دلیلونه د هغه مخکښې ښکاره شوی وو.پس دهغه په دې سوال چه رب العالمین څوك دې؟ حضرت کلیم الله جواب ورکړو.چه هغه دټولو خالق دې،دټولومالك دې،په ټولو قادردې،دټولومعبود دې. یو دې، یواځې دې، دهغه څوك سره شریك نشته.عالم علوی آسمان اوددې مخلوق، عالم سفلی زمکه اوددې کائنات ټول هغه پیداکړی دی.ددې په مینځ کښې څیزونه هوامارغان وغیره ټولودهغه مخکښې عاجزه اود هغه عبادت کونکی دی.که ستازړه دیقین دولت نه خالی نه وی.که ستا سترګې روښانه وی.نود رب العالمین دا صفتونه دهغه د ذات منلو دپاره کافی دی.په دې اوریدوسره فرعون چونکه هیڅ جواب ورنکړې شو.ځکه ئې خبره په ټوقوکښې اچولودپاره،خلقولره په خپلې ښودلې شوې عقیدې باندې مضبوطولو دپاره هغوی طرف ته اوکتل.اووې ونیل واورئ! دې زمانه سوا بل چالره الله منی؟ دتعجب خبره ده حضرت موسیﷺ دهغه په دې بې پرواهئ اونه یریدلو.اوداللهﷻ د وجود نور دلیلونه بیانول ئې شروع کړل.چه هغه ستاسوټولو اوستاسونه دمخکښې خلقومالك اوپروردګاردې. نن که تاسو فرعون لره الله منئ.نولږپه دې خوسوچ اوکړئ.چه دفرعون نه مخکښې ددنیاوالو الله څوك وو؟دده نه مخکښې د آسمان او زمکې وجود وو.ددې ایجادکونکې څوك وو؟ بس هغه زما رب دې هغه د ټولې دنیا والو رب دې.دهغه رالیږلې شوې زه یم! فرعون ددلیلونو ددې باران برداشت اونکړې شو. جواب ئې هم نه شو ورکولې . نووې ونیل دې پریږدئ داخوڅه پاګل سړې دې.که داسې نه وې.نوزما نه سوا به ئې بل څوك رب ولې منلې؟کلیم الله بیاهم خپل دلیلونه جاری اوساتل.دهغه دفضول کلام نه بې پرواه شو،وې فرمائیل چه واورئ! دمشرق او مغرب مالك چه څوك دې هغه زمارب دې.هغه نمر،سپوږمئ او ستوری د مشرق نه راخیژوی.اومغرب طرف ته ئې کوزوی.که فرعون دخپل خدائی توب دعوه کښې رښتونې دې.نولږدې یوه ورځ ددې خلاف اوکړی مونږته دې اوښائی.دمغرب نه دې راؤ باسی اومشرق ته دې بوځی.هم دا خبره خلیل الله دخپلې زمانې بادشاه ته دمناظرې په وخت کړې وه. مخکښې خونې دالله صفت بیان کړو.چه هغه ژوندی کوی مړه کوی.لیکن هغه بیوقوف چه کله دې صفت لره دالله سره د خاص کیدلونه انکاراوکړو.اووې ونیل چه داخوزه هم کولې شم.نوخلیل اللهﷺ سره ددې چه په دې دلیل کښې ډیر ګنجائش وو.ددې نه هم واضح دلیل هغه ته پیش کړو.چه زما رب د مشرق نه نمر راخیژوی.ته دا د مغرب نه راوخیژوه.اوس خو وارخطا شو.هغه پوهه شوچه که یوما اونه منل نو ولې؟ دا

واضح دليلونه خوبه په دې ټولوباندې اثراوکړي.په دې وجه نې اوس خپل قوت نه د کار اخستلو اراده اوکړله .او حضرت موسیٰ ﷺ ته نې دهمکی ورکړله وې یرولو.لکه چه روستو راروان دی.

| قَالَ | لَئِنِ اتَّخَذْتَ | اِلٰهًا | غَيْرِيْ |
|---|---|---|---|
| اوونيل فرعون | كه چرې اونيوۀ تا | معبود | غير زما نه (بل څوك) |

فرعون اوونيل كه تا زما نه بغير بل څوك معبود جوړ كړو

| لَاَجْعَلَنَّكَ | مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ ۝ | قَالَ | اَوَلَوْ جِئْتُكَ | بِشَيْءٍ |
|---|---|---|---|---|
| نو مونږ به جوړ كړو تا | دقيديانونه | اوونيل موسى | اګر كه راوړم زۀ تاته | څه څيز (دليل) |

نو زه به تا قيدى كړم | موسىٰ ﷺ اوونيل چې | اګر كه زۀ درته يو ښكاره دليل پيش كړم

| مُّبِيْنٍ ۝ | قَالَ | فَأْتِ بِهٖٓ | اِنْ كُنْتَ | مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝ | فَاَلْقٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| ښكاره | اوونيل فرعون | راوړه هغه | كه نې ته | دربښتينو خلقو نه | نو اوغورزوله هغه |

(نو بيا هم ما بندى كوې) فرعون اوونيل چې (ښه ده) ته خپل دليل راوړاندې كړه | كه ته ربښتوني نې نو

| عَصَاهُ | فَاِذَا | هِيَ | ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ۝ | وَّنَزَعَ | يَدَهٗ | فَاِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| همسا خپله | نو يودم وه | هغه | اژدها ښكاره | اوراويستلو نې | لاس خپل | نو ناسا په وۀ |

موسى ﷺ خپله همسا راوغورزوله |اودهغې نه يوه غټه اژ دها جوړه شوه | او لاس نې (دترخ نه) بهر كړو

| هِيَ بَيْضَآءُ | لِلنّٰظِرِيْنَ ۝ | قَالَ | لِلْمَلَاِ | حَوْلَهٗٓ |
|---|---|---|---|---|
| هغه تاك سپين خليدونكي | دپاره دكتونكو | اوونيل فرعون | سردارانو ته | چې ناست وۀ دهغه نه ګير چاپيره |

نوټولو كتونكو ته ځلنده سپين ښكاره شو | فرعون خپل ګير چاپيره درباريانو ته اوونيل چې

| اِنَّ هٰذَا | لَسٰحِرٌ | عَلِيْمٌ ۝ | يُّرِيْدُ | اَنْ يُّخْرِجَكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| بيشكه داسړې | خامخا جادوګر دې | ډير پوهه | دې غواړى | چې اوباسى تاسو |

داسړي چې ډير ماهر جادوګر دې | دې خو دا غواړي چې تاسو دخپل جادو په زور د ملك

| مِّنْ اَرْضِكُمْ | بِسِحْرِهٖ ۖ | فَمَاذَا | تَاْمُرُوْنَ ۝ | قَالُوْٓا | اَرْجِهْ |
|---|---|---|---|---|---|
| دزمكې ستاسو نه | په جادو خپل سره | پس څه | حكم كوئ تاسو | اوونيل هغوئ | ايسار كړه دې |

نه بهر اوباسى | نو (ددۀ په حقله) تاسو ماته څه مشوره راكونې؟ | ادوئ اوونيل چې دۀ ته اوددۀ

| وَاَخَاهُ | وَابْعَثْ | فِي الْمَدَآئِنِ | حٰشِرِيْنَ ۝ | يَاْتُوْكَ | بِكُلِّ سَحَّارٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| او رور ددۀ | اواوليږه | په ښارونو كښې | راجمع كونكې نوكران | چې راولي تاته | هر جادوګر |

رور ته (څه قدري) مهلت وركړه |او ټولو ښارونو ته كسان اوليږه | چې ټول پوهه جادوګران

| عَلِيْمٍ ۝ | فَجُمِعَ السَّحَرَةُ | لِمِيْقَاتِ يَوْمٍ | مَّعْلُوْمٍ ۝ |
|---|---|---|---|
| پوهه | نو راجمع كړې شو جادوګران | مقرر وخت دورځې | معلومې ته |

راحاضر كړي | نو ټول جادوګران ديو مقررې ورځې په يو مقرر وخت باندې راجمع كړې شول |

قوله تعالى:- قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ اِلٰهًا غَيْرِي

**دفرعون موسى ﷺ ته دهمكى**:- كله چه په بحث كښې فرعون شكست اوخوړلو.په دليل اوبيان كښې غالب نه شو.نودقوت اوطاقت مظاهره ئې اوكړله.اوپه مال اوطاقت سره ئې دحق لاندې كولواراده اوكړله.اووې وئيل چه اې موسى ازما نه سوا بل څوك به معبود جوړكړې نوپه جيل كښې به دې زوركړم اوساه به دې اوباسم.حضرت موسى ﷺ هم چونكه وعظ اونصيحت كړې وو.هغه هم اراده اوكړله چه زهٔ هم هغه اودهغهٔ قوم په بله طريقه قائل كړم.نووې فرمائيل.چه كه زهٔ په خپلو رښتياؤ باندې يوه معجزه پيش كړم اوته هم اومنې نوبيا؟ فرعون د اۆ كولونه بغيرڅه كولې شو.وې وئيل ښه ده كه رښتياوى نو پيش كړه!

قوله تعالى:- فَاَلْقٰى عَصَاهُ

**يدبيضاء د موسى ﷺ لويه معجزه**:- هغهٔ اوريدوسره خپله همسا كومه چه دهغهٔ په لاس كښې وه.هغه ئې په زمكه اوغورزوله.بس هغه په زمكه پريوتل وو.چه هغې نه د يوې اژدهې شكل جوړشو.او اژدها هم ډيره لويه،تيروغاښونووالا،هيبت ناك،ويرونكې،اوخوفناك شكل والا،وازې خلې سره راروان وواو غړمبيدله.دې سره ئې خپل ګريوان كښې خپل لاس وركړو.نوهغه دسپوږمۍ پشان پړقيدونكې راووتلو دفرعون قسمت چونكه دايمان نه خالي وو.

قوله تعالى:- قَالَ لِلْمَلَاِ حَوْلَهٗ

**د فرعون ضد**:-داسې واضحه معجزو ليدلوسره هم په خپلې بدبختۍ كلك پاتې شو.نورڅه جوړه نه شوه. خپلو ملګرواو درباريانوته ئې اووئيل.داخو ډير لوئې جادوګردې.پس خپل ملګرى ئې ددې نه منع كول غوښتل چه چرته هغوى دامعجزه اونه ګڼړى.هغوى ته ئې اووئيل.چه داخو دجادو كرشمې دى. بيشكه دومره خوماهم اومنله.چه دې دخپلې جادوګرئ په فن كښې كامل أستاذدې.بيائې هغوى لره د حضرت موسى ﷺ په دشمنئ باندې راضي كولودپاره يوه بله خبره جوړه كړله.چه دې به دغه شان كرشموښكاره كولوسره خلق خان طرف ته متوجه كوى.اوكله چه څه خلق ددهٔ سره شى.نودوى به بغاوت راوچت كړى.بيابه تاسو مغلوبه كړى اوپه دې ملك به خپله قبضه اوكړى.نو دده دختمولوكوشش د اوس نه كول پكاردى.اووايئ چه ستاسوڅه رائې ده؟ دالله قدرت اوګورئ! چه په فرعونيانوالله تعالى هغه خبره اووئيله چه په هغې كښې حضرت موسى ﷺ ته دعام تبليغ موقع ملاوشى.اوپه خلقوباندې حق واضح شى.يعنى جادوګر دمقابلې دپاره راغوښتل!

فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ ۝٣٨ وَّقِيْلَ
| نو راجمع كړې شو جادوګران | مقرر وخت ذورځې | معلومې ته | اواووئيلې شو |
| نو ټول جادوګران ديو مقررې ورځې په يو مقرر وخت باندې راجمع كړې شول اوخلقو ته اووئيلې

لِلنَّاسِ هَلْ اَنْتُمْ مُّجْتَمِعُوْنَ ۝٣٩ لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ
خلقو ته | آيا يئ تاسو | جمع كيدونكى | كيدې شى چې مونږه پيروى اوكړو | دجادوګرانو |
شو | چې آيا تاسو هم جمع كيږى (يعنى جمع شئ) | د دې دپاره كه جادوګران غالب شو | نو چې مونږ

اِنْ كَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ ۝٤٠ فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالُوْا لِفِرْعَوْنَ
كه شو هغوئ | هم هغوئ غالب | نو هر كله چې | راغلل جادوګران | نو اووئيل هغوئ | فرعون ته
دهغوئ په لار روان پاتې شو | څه وخت چې جادوګران راغلل | نو فرعون ته ئې اووئيل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَىِٕنَّ | لَنَا | لَاَجْرًا | اِنْ كُنَّا | نَحْنُ الْغٰلِبِيْنَ۝ | قَالَ | نَعَمْ | |
| آیا وی به دپاره زمونږه | خامخا څه اجر | که شو مونږه | هم مونږه غالب | اوونیل فرعون | هو ا | | |
| چي که چري مونږ غالب شو نو آیامونږ ته به څه انعام هم ملاویږي \| فرعون اوونیل چي | | | | | | | |
| وَاِنَّكُمْ | اِذًا | لَّمِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ۝ | قَالَ | لَهُمْ | مُّوْسٰى | اَلْقُوْا | |
| او بیشکه تاسو به | په هغه وخت | ضرور دنزدیکانونه یئ | اوونیل | هغوئ ته | موسی | اوغورزوئ | |
| او . اوپه دې صورت کښې به تاسو زما دې دربار په نزدې کسانو کښې شامل شئ \| موسی ﷺ اوونیل چي تاسو څه | | | | | | | |
| مَاۤ | اَنْتُمْ | مُّلْقُوْنَ۝ | فَاَلْقَوْا | حِبَالَهُمْ | وَعِصِيَّهُمْ | | |
| هغه څه \| چي تاسو \| غورزونکي يئ دهغې \| نو اوغورزولو هغوئ \| رسئ خپلې \| اوهمسا ګانې خپلې | | | | | | | |
| غورزو ل غواړئ \| نو هغه اوغورزوئی \| هغوئ خپل پړی اوهمساګانې نه اوغورزولې \| او | | | | | | | |
| وَقَالُوْا | بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ | اِنَّا لَنَحْنُ | الْغٰلِبُوْنَ۝ | فَاَلْقٰى | مُوْسٰى | | |
| \| اوو ي وئيل \| په عزت دفرعون سره \| خامخا مونږ به \| غالب كيږو \| نو بيا اوغورزوله \| موسى | | | | | | | |
| دانې اووئیل چه دفرعون په عزت او جلال قسم دې \| چي مونږ به خامخاکامیابیږو \| بیا موسی (هم) | | | | | | | |
| عَصَاهُ | فَاِذَا هِىَ | تَلْقَفُ | مَا | يَاْفِكُوْنَ۝ | | | |
| همسا خپله \| نو څه ګوري چي هغه \| تیروی \| هغه څه \| چي دروغ جوړ کړی وو هغوئ | | | | | | | |
| خپله همسا اوغورزوله \| نو فورا همسا دهغوئ جوړه کړې نظربندی تیرول شروع کړل \| | | | | | | | |
| فَاُلْقِىَ السَّحَرَةُ | سٰجِدِيْنَ۝ | قَالُوْۤا | اٰمَنَّا | بِرَبِّ | | | |
| نو بې اختیاره پریوتل جادوګران \| سجده کونکی \| اوونیل هغوئ \| ایمان راوړو مونږه \| په رب | | | | | | | |
| نو پریوتل جادو ګران پړمخ په سجده پریوتل \| ادانې اوونیل چي مونږ په رب العالمین | | | | | | | |
| الْعٰلَمِيْنَ۝ | رَبِّ مُوْسٰى | وَهٰرُوْنَ۝ | | | | | |
| العالمین باندې \| په رب دموسی \| اوهارون | | | | | | | |
| ایمان راوړو \| چي دموسی ﷺ او هارون ﷺ رب دې \| | | | | | | | |

قوله تعالٰی:- فَجُمِعَ السَّحَرَةُ

دحق اوباطل معركه.-مناظره په ژبې اوشوه.اوس فعلی مناظره کیږی.ددې مناظرې ذکرپه سورة اعراف، سورة طه اوپه دې سورة کښې دې.دقبطیانو اراده داللهﷻنورمرة کول وو.اوداللهﷻاراده غالب شوه. د ایمان اوکُفرمقابله چه کله هم اوشوه.ایمان په کُفرباندې غالب شوې دې.الله ﷻ حق په باطل باندې غالب کوی.دباطل سرشلیږی اودخلقو باطلې ارادې په هواکښې الوځی.حق چه راشی باطل تښتی. دلته همدغه شان شویده.په هریوښارکښې سپاهیان اولیږلې شول.څلورواړه طرفونونه ډیرمشهور مشهور جادوګر راجمع کړې شول.چه هغوی په خپل فن کښې کامل اود زمانې استاذان وو.وئیلی شوی دی چه دهغوی تعداد،دولس،یا پنځلس،یا اوولس یانورلس یاڅه زیات دیرش زره یا اتیا زره وو.یا

ددې نه کم وزيات وو.صحيح تعداد الله تعالى ته معلوم دې.ددوى تهولواستاذان او سرداران څلورسرى وو.سابور،عاذور،حطط اومصفىٰ!چونکه په ټول ملك کښې خبرخورشوې وو.دڅلور واړه طرفونونه ډلې ډلې خلق دمقرروخت نه مخکښې مصرکښې جمع شول.چونکه دا قاعده کليه ده چه ماتحت دخپل بادشاه په مذهب وى.دټولو دژبونه هم دا وځي چه دجادوګرو دغالب راتلونه پس به مونږدهغوى په لاره خو.دا دچا دژبې نه هم اونه وتل.چه کوم طرف ته حق وى. مونږبه هغه طرف ته خو. اوس په موقع باندې فرعون سره دخپلو نوکرانو راووتلو.ټول حاکمان سرداران ورسره وو.لښکر أوفوج ورسره وو.جادوګرنې خپل دربارته خپلې مخې ته راوغوښتل.جادوګرو دبادشاه نه وعده واخستله.څکه نې اووئيل چه کله مونږ غالب راشو.نو بادشاه خوبه دخپلو انعاماتونه مونږنه هيروى.فرعون جواب ورکړو.واه داڅنګه کيدې شى. نه صرف انعام بلکه زه خوبه تاسوبه خپلو خاص سردارانوکښې شامل کړم.اوتاسوبه هميشه زما سره اوسيږئ.تاسوبه زما نزدې خلق جوړشئ.زماټوله توجه به ستاسوطرفته وى.هغوى په خوشحالئ خوشحالئ ميدان طرف ته روان شول.هلته چه لاړل موسىؑ ته ئې اووئيل. وايه چه ته مخکښې خپله استاذى ښکاره کوې اوکه مونږئې اوښايو.حضرت موسىؑ اوفرمائيل نه تاسومخکښې خپل بهراس اوباسئ. چه ستاسوبه زړه کښې څه ارمان پاتې نه شى.په دې جواب موندلو سره هغوى خپلې چوکې او رسئ ميدان کښې اوغورزولې.اووې وئيل.د فرعون په عزت سره به غلبه زمونږه وى.لکه څنګه چه جاهل عوام څه کارکوى.نو وائى دا دفلانى په ثواب سره.په سورۀ اعراف کښې دى چه جادوګرو د خلقو په سترګو باندې جادو اوکړو.يائې هغوى په هيبت کښې واچول.اوډيرلوئې جادونې ښکاره کړو.په سورۀ طه کښې دى.چه دهغوى همساګانې او رسئ دهغوى جادوسره خوزيدونکى معلوميدو.اوس دحضرت موسىؑ په لاس کښې چه کومه همسا وه.هغه ئې ميدان کښې اوغورزولو.چه هغې په ټول ميدان کښې چه کوم څه دهغوى دنظربندئ څيزونه وو.ټول ئې تير کړل.پس حق ښکاره شو.اوباطل کمزورې شو.اودهغوى شوى کارونه ټول بيکاره شول.داڅه معمولى خبره او وړوکې دليل نه وو.جادوګر خو د هغې په ليدوسره مسلمانان شول.چه يوسړې دفن ددومره استاذانوبه مقابله کښې راځى.دهغۀ حال د جادوګرويشان نه ذې.هغه څه خبره نه کوى.يقيناً زمونږ جادو،جادو دې.اوهغۀ سره دالله معجزه ده. هغوى خوهغه وخت هم هلته د رب په مخکښې سجده کښې پريوتل.اوهم په دغه مجمع کښې ئې د ټولوبه مخکښې دخپل ايمان راوړلواعلان اوکړو.چه مونږبه رب العالمين باندې ايمان راوړلو.بيادخپل قول نور واضح کولودپاره ئې ورسره داهم اووئيل.چه درب العالمين نه زمونږ مراد هغه رب دې.کوم ته چه حضرت موسىؑ اوهارونؑ خپل رب وائى.دومره لويه معجزه دومره لوئې انقلاب فرعون په خپلوسترګو اوليدلو.ليکن دملعون په قسمت کښې ايمان نه وو.بيائې هم سترګې کهلاونه کړلې.اود خان دشمن شو.اوبه خپل طاقت سره ئې حق ختمولو.اووې وئيل.چه آوزه پوهه شوم.موسىؑ ستاسو د ټولو استاذ وو.دې تاسومخکښې راوليږلو.بياتاسوبه ښکاره مقابلې کولودپاره راغلئ.اوخپل مينځ کښې دمشورې مطابق تاسوبه ميدان کښې شکست اوخوړلو.اوددۀ خبره مواومنله.پس ستاسوداچل ښکاره شو.

| | |
|---|---|
| قَالَ | اٰمَنْتُمْ لَهٗ |
| اووئيل فرعون | تاسو خبره اومنله دهغه |
| فرعون اووئيل چې تاسو زما د | |

قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ اِنَّهٗ لَكَبِيْرُكُمُ الَّذِيْ

مخکښې ددې نه | چې زه اجازت درکړم | تاسو ته | بیشکه هغه | خامخا مشر ستاسو دې | هغه

اجازت نه وړاندې په موسی ﷺ باندې ایمان راوړو | بیشکه داموسی ستاسو مشردې | چاچې

عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ لَاُقَطِّعَنَّ

چې ښودلي ئې دې تاسو ته | جادو | پس ډیر زر به | پته اولږي تاسو ته | خامخا به پریکړم زه

تاسوته جادو خودلې دې | ډیر زر به تاسوته ددې انجام معلوم شي | زه به ستاسو دیو اړخ

اَيْدِيَكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ مِّنْ خِلَافٍ وَّلَاُصَلِّبَنَّكُمْ

لاسونه ستاسو | او خپې ستاسو | دمخالفو طرفونو نه | او پانسی به کړم تاسو |

لاس او دبل اړخ پښه پریکړم | اوتاسو ټول به په سولئ کړم |

اَجْمَعِيْنَ قَالُوْا لَا ضَيْرَ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُوْنَ

ټول | اوونیل هغوئ | نشته ضرر (پروا) | بیشکه مونږه | رب خپل ته | واپس تلونکی یو

......هغوی اوونیل چې هیڅ خبره نه ده | مونږ خپل رب ته واپس تلونکی یو. |

اِنَّا نَطْمَعُ اَنْ يَّغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطٰيٰنَآ اَنْ كُنَّآ

بیشکه مونږه | امید لرو | چې اوبه ښېنی مونږ لره | رب زمونږه | گناهونه زمونږه | چې وو مونږه |

مونږ امید لرو | چې زمونږ رب به زمونږ گناهونونه معاف کړې | ځکه چې مونږ د ټولو

اَوَّلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰٓى اَنْ اَسْرِ

اول مومنان (په دغه حاضرینو کښې) | او وحی اوکړه مونږه | موسی ته | چې دشپې بوځه

ړومبې ایمان راوړې دې | او مونږ موسی ﷺ ته حکم اوکړو | چې زما بندگان شپه په شپه

بِعِبَادِيْٓ اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ فَاَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِي الْمَدَآئِنِ

بندگان زما | بیشکه تاسو | پسې به درځی خلق | نو اولیږل | فرعون | په ښارونو کښې (خبریالان)

(دمصر نه) بهر ته اوباسه | خو تاسو به رالاندې کولې شئ | فرعون ټولو ښارونو ته سپاهیان

حٰشِرِيْنَ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيْلُوْنَ وَاِنَّهُمْ

راجمع کونکي (دلښکر) | بیشکه دا بنی اسرائیل | خامخا یوه ډله ده | لږه | او بیشکه دوئ

اولیږل | ..........اووې وئیل چې دا یو وړوکې شان ټولې دې | اودوئ

لَنَا لَغَآئِظُوْنَ وَاِنَّا لَجَمِيْعٌ حٰذِرُوْنَ

مونږ لره | غصه راوستونکی دی | او بیشکه مونږه | خامخا یوه ډله یو | بیدار اوسیدونکی |

مونږ ډیر زیات قهرولی یوا او مونږ وسله پورې خلق یو

فَاَخْرَجْنٰهُمْ مِّنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ وَّكُنُوْزٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ

نو راوویستل مونږ هغوئ لره | دباغونو نه | او دچینونه | او دخزانونه | او دښو ځایونونه

غرض داچې مونږ دغه فرعونیان دباغونو اوچینو اوخزانو او ښائسته کورونو نه بهر اوویستل

| بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ۝ | وَأَوۡرَثۡنَٰهَا | كَذَٰلِكَۖ |
|---|---|---|
| بني اسرائيلو ته | او په ميراث كښي وركړل مونږه هغه | هم داسې اوكړل مونږه |
| داموي اوكړل او مونږ بني اسرائيل د دوئ وارثان جوړ كړل | | |

**قوله تعالى:-** قَالَ ءَامَنتُمۡ لَهُۥ قَبۡلَ أَنۡ ءَاذَنَ لَكُمۡۖ

**حق غالب اوباطل مغلوب شو او د فرعون دهمكي:**-سُبحان الله څنګه كامل ايمان والاخلق وو.حالانكه اوس په ايمان كښې راغلي وو.ليكن دهغوى دصبراوكلكوالي به څه واني.فرعون پشان ظالم اوجابر ورته ولاړ دې دهمكيانې وركوى او يروى يې.اوهغوى زړه ورتيا سره بې دويرې نه دهغهٔ دطبيعت خلاف جواب وركوى.دكُفر پردې ئې دزړهٔ نه لرې شوى دى.په دې وجه دسينې په زورمقابلې دپاره راغلي دى.اود مادى طاقتونونهٔ بالكل نه ويريږى.ددوى په زړونوكښې داخبره ناسته ده.چه موسى ﷺ سره دالله وركړې شوې معجزه ده.حاصل كړې شوې جادونه دې.دغه وخت ئې حق قبول كړو.فرعون دغصې نه سورشو.او وې ونيل.چه تاسوخوزه د ےڅ څيز اونه ګنړلم.زما نه باغى شوئ.زمانه موتپوس هم اونه كړو.اود موسى ﷺخبره مواومنله؟بياپه دې خيال سره چه چرته دمجلس په حاضرينو باندې ددهٔ دشكست خوړلو،بلكه بيادمسلمانيدواثراونه غورزيږى.هغهٔ دهغوى دپوهولو يوه خبره جوړه كړله.اووې ونيل چه آو تاسو ټول ددهٔ شاګردان يئ.اودې ستاسو اُستاذدې.تاسوټول مريدان يئ اودې ستاسو بزرګ دې.تاسو ټولوته دهٔ جادو ښودلې دى.دې دهوكه بازئ ته اوګورئ.دا صرف د فرعون بې ايمانى او چل بازى وه.ګنى ددې نه مخكښې نه جادوګروكليم الله ليدلې وو.نه دالله رسول ﷺ ددوى د شكل پيژندلو. دالله پيغمبرخوجادو پيژندلوهم نه.چاته به ئې څه ښودلې وې؟دعقلمندئ خلاف ئې داخبره اوكړله بيانې دهمكيانې شروع كړلې.اوپه خپل ظالمانه عادت باندې راغې وې ونيل.زه به ستاسوټولو لاسونه خپې اُلټه پرې كړم.او تاسوبه لندى بوندى كړم.بيابه موپهانسى كړم.اويوبه هم ددې سزانه پرې نږدم.

**قوله تعالى:-** قَالُواْ لَا ضَيۡرَۖ

**دجادوګرانوفرعون ته جواب:**-ټولو متفق طورباندې جواب وركړو.چه خان صاحب په دې كښې څه باك دې؟ څه چه ستانه كيدې شى اوكړه.مونږته هيڅ پرواه شته.مونږله خوالله ﷻطرف ته واپس تلل دى. مونږ به دهغهٔ نه ثواب اخلو.څومره تكليف چه ته مونږته راكوې.دومره اجراوثواب به زمونږ رب مونږته راكوى.په حق باندې مصيبت برداشت كول بالكل معمولى خبره ده.چه ددې مونږته هيڅ ويره نشته. زمونږخواوس بس يوخواهش دې.چه زمونږ رب مونږپه تيرو شووګناهونوباندې اونه نيسى.كومه مقابله چه تاپه مونږه كړې ده.ددې وبال (ګناه) زمونږنه لرې شى.اوددې دپاره مونږسره سوا ددې نه هيڅ وسيله نشته. چه مونږ ټول دټولونه مخكښې الله والاجوړشو.په ايمان كښې مخكښې شو.په دې جواب باندې هغه نورهم غصه شو.اوهغوى ټولو لره هغهٔ قتل كړل. ﷺ

**قوله تعالى:-** وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ

**د فرعون د ګرفت نه د بنى اسرائيلو ازادى:**-موسى ﷺ دخپل نبوت ډيره زمانه په هغوى كښې تيره كړله. دالله تعالى آياتونه او دليلونه ئې په هغوى باندې واضح كړل.ليكن دهغوى سرښكته نه شو.دهغوى تكبرختم نه شو.دهغوى په بدودماغوكښې هيڅ فرق رانغې.نواوس ددې نه سواهيڅ څيزباقي پاتې نه شوچه په هغوى باندې دالله عذاب راشى.او تباه شى.موسى ﷺ ته دالله وحى راغله چه دشپې شپې بنى اسرائيل څان سره زمادحكم مطابق روان كره.بنى اسرائيلوپه دغه موقعه باندې دقبطيانونه ډيركالى

(زیورات) دعاریت په طورواخستل.اودشپې دسپوږمۍ په رنړاکښې چپ چاپ اووتل.مجاهد رحمه الله وائي چه په دغه شپه سپوږمۍ تندر(چاندګهن؟؟)نیولې وه (¹).

**موسیٰ ؑ دتللو په وخت کښې دیوسف ؑ تابوت هم ځان سره واخستو:-** موسیٰ ؑ په لاره کښې تپوس اوکړو چه دحضرت یوسف ؑ قبرچرته دې؟دبنی اسرائیلویوې بوډهۍ قبراوښودلو.هغوی دیوسف ؑ تابوت ځان سره یوړلو.وئیلی شوی دی.چه هغوی پخپله هغه اوچت کړې وو.دحضرت یوسف ؑ وصیت وو چه بنی اسرائیل کله ددې ځائې نه ځی.نوزما تابوت دې هم دځان سره یوسی (²).دابن ابی حاتم په یو حدیث کښې دی.چه نبی ﷺ یو بانډیچی سره میلمه وو.هغهٔ دنبی ﷺ ډیره میلمستیا اوکړله.په واپسۍ کښې نبی ﷺ اوفرمائیل.کله مونږسره په مدینه کښې هم ملاؤشه.څو ورځې پس بانډیچی نبی ﷺ ته راغې.نبی ﷺ اوفرمائیل څه غواړې؟ هغهٔ اووئیل آو یوه ښه اوښه سره د کجاوې راکړه.او یوه چیلۍ راکړه.چه هغه پۍ ورکوی.نبی ﷺ اوفرمائیل.افسوس چه تا دبنی اسرائیلو دبوډهۍ په شان سوال اونه کړو.صحابو رضي الله عنهم تپوس اوکړو.داواقعه څنګه ده؟نبی ﷺ اوفرمائیل.کله چه حضرت کلیم الله بنی اسرائیل ځان سره روان کړل.نولاره ترې هیره شوه.په زرګونو کوشش نې اوکړو.لیکن لاره نه ملاویده. هغوی خلق راجمع کړل تپوس نې ترې اوکړو.چه دا تیارهٔ ولې ده؟ نودبنی اسرائیلوعالمانو اووئیل.خبره داده چه حضرت یوسف ؑ په خپل آخری وخت کښې زمونږنه وعده اخستې وه.چه کله مونږدمصرنه ځو.نودهغهٔ تابوت به هم دځان سره اوړو.حضرت موسیٰ ؑ تپوس اوکړو.چه په تاسوکښې چاته پته ده.چه دحضرت یوسف ؑ تابوت چرته دې؟ ټولو انکار اوکړو.چه مونږته پته نشته.په مونږکښې سوا د یوې بوډهۍ نه څوك هم دهغوی دقبرنه خبرنه دی.هغوی هغه بوډهۍ ته سړې اولیږلوهغه نې راوغوښتله چه ماته د حضرت یوسف ؑ قبراوښایه.بوډهۍ اووئیل.درته ښائم خومخکښې خپل حق اخلم.حضرت موسیٰ ؑ اووئیل ته څه غواړې؟ هغې جواب ورکړو.چه په جنت کښې تاسره ملګرتیا ماته ملاؤشی.په هغوی باندې دهغې داسوال ډیرګران شو.هغه وخت وحی راغله.چه ددې خبره اومنه.ددې شرط منظورکړه.اوس هغوی موسیٰ ؑ یوتالاب ته بوتلو.چه دهغې د اوبورنګ هم بدل شوې وو.وې وئیل چه ددې اوبه اوباسه.کله نې چه اوبه ویستلې.اوزمکه ښکاره شوه.نووې وئیل اوس داځائې اوکنه.چه کنستل نې شروع کړل.نو قبرښکاره شو.تابوت نې ځان سره کیخوده.اوس چه کله روان شول. نولاره صفا ښکاره شوه. اوبه نیغه لار روان شول(³).لیکن داحدیث ډیر غریب دې.بلکه حق ته زیاته نزدې خوداده.چه دا موقوف دې.یعنی درسول الله ﷺ فرمان هم نه دې.والله اعلم.

**ددوئ دوتلو فرعون ته معلومات اوشو:-** دا خلق خوپه خپله لار روان شول.هلته چه د فرعون او فرعونیانو دسحرپه وخت سترګې کهلاو شوې .نو څوکیدار غلامان وغیره څوك هم نشته.ډیرزیات پریشانه شول. اودغصې نه سرهٔ شول.کله چه دامعلومه شوه.چه بنی اسرائیل خودشپې ټول په ټوله تښتیدلی دی.نو نوره هم خاموشی شوه.هغه وخت نې خپل لښکرجمع کړو.ټولوته نې اووئیل.چه دا دبنی اسرائیلو وړه شان ډله دهٔ.خالص ذلیل،سپك،لړشان خلق دی.هروخت ددوی نه مونږته غم رارسی.تکلیف راته رسیږی.اوبیا هروخت مونږته ددوی دطرفه پریشانی وی.دا معنی د﴿حٰذِرُوْنَ﴾په قراءت باندې د سلفو یو جماعت داحذرون هم وئیلې دې.یعنی مونږ وسله بندیو.ما اراده کړې ده.چه اوس دوی ته ددوی د سر کشۍ سزاورکړم.دوی ټول یوځائې ګیرکړم.دګاخرو مولوپه شان نې پرې کړم.دالله شان چه هم داخبره په هغهٔ باندې پریوتله.اوهغه سره دخپل قوم اولښکر په یووخت هلاك شو.(لعنة الله علیه وعلی من تبعه)

---

¹) الطبری : ۲٥٤/۱۹.
²) الطبری : ۲٥٤/۱۹.
³) حاکم : ٤٠٤/٢، وسنده صحیح.

**قوله تعالی:- فَأَخْرَجْنٰهُمْ مِّنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ۝**

**فرعونیان بېخ ټول د خپلو کورونو نه اوویستل:-** دالله تعالی ارشاددې.چه داخلق دخپل طاقت اوکثرت په نشه کښې بنی اسرائیلو پسې دهغوی دختمولوپه ارادې سره اووتل.په دې بهانه مونږهغوی لره دهغوی د باغونو،چینو،اونهرونونه،دخزانواوښائسته کورونونه راوویستل.اوجهنم ته موداخل کړل.هغوی خپل اوچت اوچت،شان وشوکت والامحلونه،شنه تازه باغونه،جاري نهرونه،خزانې،سلطنت،ملك،تخت و تاج،جاه ومال ټول پرېښودل.بنی اسرائیلوپسې دمصرنه اووتل.اومونږداټول څیزونه بنی اسرائیلوته ورکړل چه هغوی ترننه پورې کمزوری وو.ذلیل او خوار وو.چونکه زمونږ اراده شوې وه.چه مونږددوی کمزوری ختمه کړواوداکمزوری خلق په ترقئ کړو اودوی پیشوااووارثان جوړکړو.داارادہ مونږپوره کړله.

فَاَتْبَعُوْهُمْ | مُّشْرِقِيْنَ ۝ | فَلَمَّا | تَرَآءَ
نوروان شو هغوئ په هغوی پسې | په وخت دختلو دنمر کښې | انو هر کله چې|ایوبل سره لیدل اوکړل
هغوئ د نمر ختلو په وخت کښې بنی اسرائیلو پسې شول| هرکله چې

الْجَمْعٰنِ | قَالَ | اَصْحٰبُ مُوْسٰٓى | اِنَّا لَمُدْرَكُوْنَ ۝ | قَالَ
دواړو ډلو | نو اوونیل| ملګرو دموسی | بیشکه مونږه اونیولې شو | اوونیل موسی
دواړو ډلو یو بل ته کتل | نود موسی ﷺ ملګرواوونیل | چې مونږ خوبس سم راګیر شو

كَلَّا | اِنَّ مَعِىَ | رَبِّىْ | سَيَهْدِيْنِ ۝ | فَاَوْحَيْنَآ | اِلٰى مُوْسٰٓى
هرګزنه | بیشکه ماسره | رب زما دې | چې لاربه ښائي ماته | نووحي اوکړه مونږه | موسی ته
موسی ﷺ اوفرمائیل چې هیڅکله نه بیشکه زما رب ماسره دې |هغه به راته لاره ښائي| هغه وخت مونږ

اَنِ اضْرِبْ | بِّعَصَاكَ | الْبَحْرَ | فَانْفَلَقَ | فَكَانَ | كُلُّ فِرْقٍ
چې اووهه | په همسا خپله | دادریاب | نو اوشلیدو هغه | پس شوه | هره حصه |
موسی ﷺ ته حکم اوکړو| چې په خپله همسا دریاب اووهه | نودریاب اوشلیدو|او(داوبو) یوه ټکړه

كَالطَّوْدِ الْعَظِيْمِ ۝ | وَاَزْلَفْنَا | ثَمَّ | الْاٰخَرِيْنَ ۝ | وَاَنْجَيْنَا
پشان دغرلوئ | او رانزدې کړل مونږه | هغه ځائې ته | هغه بله ډله | او بچ کړو مونږه |
دلوئې غر په شان شوه |اومونږ بله ډله (کافران) هم نزدې اورسول | اومونږ موسی ﷺ

مُوْسٰى | وَمَنْ | مَّعَهٗٓ | اَجْمَعِيْنَ ۝ | ثُمَّ اَغْرَقْنَا | الْاٰخَرِيْنَ ۝
موسی |او هغه څوك | چې وو دهغه سره | ټول | بیا ډوب کړل مونږه | هغه نور خلق |
اوهغه ملګری ټول بچ کړل | بیا دویم فریق (فرعونیان) مو ډوب کړل

اِنَّ | فِىْ ذٰلِكَ | لَاٰيَةً | وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ ۝ | وَاِنَّ
بیشکه | په دې کښې | یوه نښه ده | اونه دی اکثر ددې خلقو نه | ایمان راوړونکی | او بیشکه |
بیشکه په دې واقعه کښې ډېر لوئې عبرت (پند) دې |او په دوئ کښې زیات خلق ایمان نه راوړی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبَّكَ | لَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ ﴿٦٨﴾ | |
| رب ستا | خامخا هغه دي | غالب | رحم كونكي | |
| او بيشكه ستا رب غالب او مهربان دي | | | | |

**قوله تعالى:- فَأَتْبَعُوهُم مُّشْرِقِينَ ﴿٦٠﴾**

**دفرعوناوفرعونيانوعبرتناك انجام:-** فرعون خپل ټول قوم اولښكر، ټول ماتحت، دمصر اودمصربهر خلق، خپل اودخپل قوم خلق ځان سره روان كړل. ډيرپه تكبراوغرورسره دبني اسرائيلوختمولو ارادې سره روان شو. بعضې وائي. چه دهغوى تعداد دلكهاؤ نه هم زيات وو. په هغوى كښې يولاكهـ خوصرف په توررنګ اسونو باندې سوارهٔ وو. ليكن داخبر داهل كتابودې. سوچ پكښې پكاردې. دكعب ﷺ نه خونقل دى. چه انه لاكهه په داسې اسونوباندې سوارهٔ وو. زمونږخوخيال دې چه داټول د بني اسرائيلو دمبالغې نه ډك روايتونه دى. دومره خود قرآن نه ثابته ده. چه فرعون خپل ټول جماعت ځان سره روان كړو. خوقرآن د هغوى تعداد نه دې بيان كړې. نه ددې علم مونږته څه فائده راكونكې دې. دنمر راختلوپه وخت هغوى ته دوى اورسيدل. كافرانو مؤمنان، اومؤمنانو كافران اوليدل. دموسى ﷺ دملګرودخلې نه بې اختياره اووتل چه اې موسى! اوس وايه چه څه اوكړو. مونږ اونيولى شو. مخكښې قُلزم سمندردې. شاته د فرعون تباه كونكې سخت زرى لښكردې نه ځائې د پناه شته او نه پښې مزل كوى. ښكاره خبره ده چه دنبي او غير نبي ايمان برابر نه شي كيدې. حضرت موسى ﷺ ډيره په تسلئ سره جواب وركوى. چه مه ويريږئ تاسو ته هيڅوك تكليف نه شي رسولې. ماخپلې رائې سره تاسونه يئ راويستلى. بلكه داحكم الحاكمين په حكم سره مې راوستى يئ. هغه وعده خلاف نه دې. دهغې په مخكښې حصه باندې حضرت هارون ﷺ وو. هم دهغهٔ سره يوشع بن نون وو. ياد آل فرعون مؤمن سړې وو. اوحضرت موسى ﷺ د لښكرپه آخرى حصه كښې وو. د ويرې اود لارې د نه موندلوپه وجه ټول بني اسرائيل حيران او پريشان شول. او ناقلارئ سره ئې دجناب كليم الله نه تپوس اوكړو. چه هم په دې لاره دالله تعالى حكم وو؟ هغوى اوفرمائيل. آو په دومره وخت كښې خوبه فرعونيان په سرباندې راوخيژى. دغه وخت د پروردګاروحى راغله. چه اې نبي! په دې درياب باندې خپله همسا اووهه. اوبيا زما دقدرت كرشمه اوګوره. هغوى همسا اووهله. چه دهغې په لګيدوسره دالله په حكم اوبه اوشليدې ددغه پريشانئ په وخت موسى ﷺ دا دعا اوغوښتله. چه داپه ابن ابى حاتم كښې په دې الفاظوسره نقل ده. (يَامَنْ كَانَ قَبْلَ كُلِّ شَيءٍ اَلْمُكَوِّنُ لِكُلِّ شَيءٍ وَالْكَائِنُ بَعْدَ كُلِّ شَيءٍ اِجْعَلْ لَنَا مَخْرَجًا)، دا دعا دموسى ﷺ دخلې نه وتل وو. چه دالله تعالى وحى راغله. چه په سمندرباندې خپله همسا اووهه.

**درياب ته دالله تعالى حكم او درياب شليدل:-** حضرت قتادهٔ ﷺ فرمائى. چه په دغه شپه الله تعالى سمندرطرفته دمخكښې نه حكم ليږلېوو. چه كله زماپيغمبرموسى ﷺ راشي. اوتاپه لرګى اووهى. نودهغهٔ واوره اواومنه. پس په سمندركښې ټوله شپه چپې وې. دهغې چپې يوخوابل خوا لګيدلې. چه نه معلوم حضرت كله اودكوم طرفه راشي. اوماپه لرګى اووهى. داسې نه چه ماته پته هم اونه لګى. اوزهٔ د هغهٔ حكم پوره نكړې شم. كله چه بالكل غاړې ته اورسيدلو. نودهغهٔ ملګرى حضرت يوشع بن نون ﷺ اوفرمائيل. اې دالله نبي! دالله تاسوته څه حكم دې؟ هغوى اوفرمائيل هم داچه زهٔ سمندرباندې خپله همسا اووهم. هغوى اوونيل. بيا دڅهٔ انتظاردې؟ نوهغهٔ همسا اووهله اووې فرمائيل. دالله تعالى په حكم سره اوشليږه. اوماته دتلو لاره راكړه. بس هغه وخت هغه اوشليدلو. لارې په مينځ كښې صفاپه نظر راغلې. اودهغې يوخوا بل خوا اوبه دغرپشان شوې. په هغې كښې دولس لارې راووتلې. د بنواسرائيلو قبيلې هم دولس وې. بيادالله تعالى قدرت داچه دهر دوؤ ډلوپه مينځ كښې چه كوم غر حائل وو. په

هغې کښې کهرکۍ جوړې شوې.چه هریوه بل لره سلامتیا سره راتلونکی اووینی (۱).اوبه په شان د دیوالونو شوې.اوهواته حکم اوشو.هغې دمینځ نه اوبه او زمکه اوچه کړله،لاره نې صفا کړله.پس په دغه اوچه لاره موسی ﷺ سره دخپل قوم بې ویرې لاړلو.بیا فرعونیانو لره الله تعالی سمندرته نزدې کړل.بیاموسی ﷺ اوبنی اسرائیلوټولوته خلاصې ملاوشوه.اوپه هغوی کښې څوک هم ډوب نه شول.اوپه باقی ټولوکافرانوکښې څوک هم بچ نه شول.

**د موسی ﷺ او دریاب مینځ کښې مکالمه:-** حضرت ابن مسعود ﷺ فرمانی.فرعون ته چه کله دبنی اسرائیلو دتښتیدلوخبر ملاوشو.نوهغه یوه چیلۍ ذبح کړله.اووې وئیل چه ددې دځرمن ویستلونه مخکښې دې ماته شپږلاکهه لښکر جمع کړې شی.موسی ﷺ چه په منډو منډو کله دسمندر غاړې ته نزدې اورسیدلو.نوسمندرته نې اوفرمائیل.ته اوشلیږه،یوطرف ته شه اوموږته ځائې راکړه. هغه اووئیل دا څه دتکبر خبرې کوې.آیا زۀ ددې نه مخکښې هم کله چودلې یم.او یوطرف ته شوې یم،کوم انسان له مې ځائې ورکړې دی.چه تاته نې درکړم.موسی ﷺ چه کوم بزرګ سړې وو.هغوی اووئیل.چه اې دالله نبی! چه هم دا لاره اوهم دا ځائې الله تعالی ښودلې دې؟ موسی ﷺ اوفرمائیل آوهم دا ځائې.هغوی اووئیل.بیاخونه تاسو دروغژن یئ نه تاسوته غلط فرمائیلی شوی دی.هغوی دوباره هم دا اووئیل لیکن بیاهم څه اونه شول.دغه بزرګ سړې دوباره هم دغه سوال جواب اوکړو.دغه وخت وحی نازله شوه.چه سمندرپه خپله همسا اووهه.اوس دهغوی خیال راغې اوپه همسانې اووهلو.په همسا وهلوسره سمندر لاره ورکړله.دولس لارې ښکاره شوې.هریوې ډلې خپله لاره اوپیژندله.اوپه خپله لاره روان شول. اویوبل ته نې کتل په اطمینان سره ټول لاړل.حضرت موسی ﷺ خوبنی اسرائیل ځان سره کړل پورې وتل.او فرعونیان په هغوی پسې سمندرته راورسیدل.چه دالله تعالی په حکم سره دسمندر اوبه څنګه وې هغه شان شوې.اوټول نې ډوب کړل.کله چه دټولونه آخری بنی اسرائیلی راووتلو.اودټولونه آخری قبطی سمندرته راغې.دغه وخت دالله تعالی په حکم سره دسمندر اوبه یوځائې شوې.اوټول په ټوله قبطیان یوپه یو ډوب شول.په دې کښې ډیره عبرتناکه ننبه ده.چه څنګه ګنهګار تباه کیږی.اونیکان کامیابیږی.لیکن بیاهم اکثرخلق دایمان په شان دولت نه محروم دی.بیشکه ستا رب عزیز اورحیم دې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاتْلُ | عَلَيْهِمْ | نَبَأَ | | | | |
| او لوله | په دوئ باندې | قیصه | | | | |
| او دانې نبی، دوئ ته دابراهیم ﷺ قصه | | | | | | |
| إِبْرَاهِيمَ | إِذْ | قَالَ | لِأَبِيهِ | وَقَوْمِهِ | مَا تَعْبُدُونَ | |
| دابراهیم علیه السلام | کله چې | اووئیل هغه | پلار خپل ته | اوقوم خپل ته | دڅه عبادت کوئ تاسو | |
| هم واوروه هرکله چې هغوئ خپل پلار اوخپل قوم ته اووئیل چې دا ناسو د څه څیز عبادت کوئ | | | | | | |
| قَالُوا | نَعْبُدُ | أَصْنَامًا | فَنَظَلُّ | لَهَا | | |
| اووئیل هغوئ | مونږه عبادت کوو | دبتانو | پس همیشه اوسیږو مونږ | دې بتانو ته | | |
| هغوئ اووئیل چې مونږ د بتانوعبادت کوو اوهم دهغوئ په عبادت قائم یو | | | | | | |

(۱) الطبری: ۳۵۷/۱۹.

عٰلَمِیْنَ﴿۷۷﴾ قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ إِذْ تَدْعُونَ﴿۷۲﴾ لا

نزدې كيناستونكې | اووئيل ابراهيم | ايا اورى دوئ خبرې ستاسو | كله چې | تاسو اواز كوئ دوئ ته

ابراهيم عليه السلام ورته اووئيل چې ايا دوئ ستاسو خبره اوريدې شي | كله چې تاسو دوئ رابلئ ؟

أَوْ يَنْفَعُونَكُمْ أَوْ يَضُرُّونَ﴿۷۳﴾ قَالُوا بَلْ وَجَدْنَا

يا دوئ فائده رسوی تاسو ته | يا ضرر دررسوی تاسو ته | اووئيل هغوئ | بلكه موندلی دی مونږه

يا تاسو ته څۀ ضرر يا فائده دركولې شي ؟ | هغوئ اووئيل چې نه ، مونږ خو بس

آبَاءَنَا كَذٰلِكَ يَفْعَلُونَ﴿۷۴﴾ قَالَ أَفَرَءَيْتُمْ مَّا

پلاران زمونږه | چې دارنګې | كار به ئې كولو | اووئيل ابراهيم | ايا نو كتلی دی تاسو | هغه بتانو ته

خپل پلار نيكه په دې كار دغسې موندلی دی | ابراهيم عليه السلام اووئيل چې ايا تاسو ددغې

كُنْتُمْ تَعْبُدُونَ﴿۷۵﴾ لا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمُ الْأَقْدَمُونَ﴿۷۶﴾ صلے

چې يئ تاسو | چې عبادت ئې كوئ | تاسو | او پلاران ستاسو | چې مخكښې تير شوی دی |

معبودانو حالت هم ليدلې دې | تاسو يا ستاسو پخوانو پلارنيكونو

فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيْ إِلَّا رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ﴿۷۷﴾ لا

پس بيشكه چې دوئ | دشمنان دی زما | مګر نه | رب دمخلوقاتو |

هغه ټول زما دښمنان دی | سوا دهغه رب العالمين نه كوم چې زه پيدا كړم

**قوله تعالى:- وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرٰهِيْمَ﴿۶۹﴾**

**د حضرت ابراهيم عليه السلام دعوت توحيد:-** دټولو موحدينو دپلار، دالله تعالى دبنده اورسول اوخليل حضرت ابراهيم عليه افضل التحيّة والتسليم واقعه بيانيږی.نبي كريم ﷺ ته حكم كولې شي.چه تاسوخپل اُمت ته داواقعه واوروئ.چه هغوی په اخلاص،توكل،اود يورب عبادت،اود شرك اومشركانونه بيزارئ كښې ستاسو اقتدا اوكړی.هغوی د اول ورځې نه دالله تعالى په توحيد باندې قائم وو.او آخر ورځې پورې په دې توحيد باندې كلك ولاړوو.خپل قوم اوخپل پلارته ئې اوفرمائيل.چه دا بُت پرستی ولې كوې.

**قوله تعالى:- قَالُوا نَعْبُدُ**

**د قوم جواب:-** هغوی جواب وركړو.چه مونږ خو دپخوانه ددې بُتانو مجاوری اوعبادت كونكی راروان يو.حضرت ابراهيم عليه السلام دهغوی داغلطی په هغوی باندې واضحه كړله.دهغوی دغلطې طريقې ښكاره كولو دپاره ئې يوه خبره بله هم بيان كړله.چه تاسو ددوی نه دعاګانې غواړئ.اود لرې اونزدې نه دوی رابلئ.نوآيا دوی ستاسو آواز آوری؟ يادكومې نفعې حاصلولودپاره چه تاسو دوی رابلئ.آيا هغه نفع دوی تاسوته در رسولې شی؟ كه تاسوددوی عبادت پريږدئ نوآيا دوی تاسوته نقصان در رسولې شی؟ ددې كوم جواب چه دقوم دطرفه ملاوشو.هغه صفاښكاره دې.چه ددوی معبودان په دې كارونوكښې يو كارهم نه شی كولې.هغوی صفا اووئيل چه مونږخو دخپلو مشرانو دتقليدپه وجه بت پرستئ باندې كلك ولاړيو.

**دقوم په جواب د ابراهيم عليه السلام وينا:-** ددې په جواب كښې حضرت خليل الله عليه السلام دهغوی نه اودهغوی باطلو معبودانو نه دخپل براءت اوبيزارئ اعلان اوكړو.صفا ئې اوفرمائيل.چه ستاسو اوستاسوهغه معبودان دكوم چه تاسو اوستاسو پلار نيكونو عبادت كولو.دهغې ټولونه زه بيزاره يم.داټول زما دشمنان دی.زۀ

صرف د ربښتونی رب عبادت کونکې یم.زه مخلص موحد یم.لاړشئ ستاسو او ستاسو دمعبودانونه چه څه کیدې شی اوکړئ.

**د نوح ﷺ او هود ﷺ هم دغه شان جواب وو**:-حضرت نوح ﷺ خپل قوم ته هم دا فرمائیلی وو.چه تاسو اوستاسوټول معبودان که ملاوشئ اوماته څه نقصان رارسولی شئ،نوڅه کمی مه کوئ.حضرت هود ﷺ هم فرمائیلی وو.زه ستاسونه اوستاسو دمعبودانونه دالله تعالی نه سوا دټولونه بیزاره یم.تاسوټول که ماته څه نقصان رارسولی شئ نو راورسوئ! زما بهروسه دخپل رب په ذات باندې ده.ټول ساه لرونکی د هغهٔ دحکم لاندې دی.هغه نیغې لار والادې.دغه شان خلیل الرحمن ﷺ اوفرمائیل.چه زه ستاسو د معبودانو نه بالکل نه ویریږم.ویره خوتاسوله زما درب نه ساتل پکاردی.چه هغه الله تعالی دې.هغوی اعلان کړې وو.چه په ما او تاسو کښې دشمنی ده.چه ترڅو پورې تاسوپه یوالله باندې ایمان رانه وړئ.اې پلاره! زه ستانه او ستادقوم او ستاد معبودانونه بیزاره یم.صرف دخپل رب نه مې اُمید دې.چه هغه ماته نیغه لار اوښائي.هم دا یعني ((لاَ اِلٰهَ اِلاَّ الله)) لره هغوی کلمه جوړه کړله.

| |
|---|
| الَّذِیْ خَلَقَنِیْ فَهُوَ یَهْدِیْنِ ۙ وَالَّذِیْ هُوَ یُطْعِمُنِیْ |
| هغه رب چې پیدا ئې کړم زه \| پس هغه \| لار ښائي ماته \| او هغه رب \| چې هغه \| خوراک راکوی ماته \| |
| او هم هغه ما ته سمه لار ښائي \|او هم هغه رب چې ماباندې خوروی څکوی |
| وَیَسْقِیْنِ ۙ وَاِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ یَشْفِیْنِ ۙ وَالَّذِیْ |
| اواوبه راکوی ماته \| او کله چې \| ناجوړه شم زه \| نوهغه \| شفا راکوی ماته \| او هغه رب \| |
| اوڅه وخت چې زه بیمار شم انو هم هغه ماته شفا راکوی \|او هم (هغه الله ﷻ به) |
| یُمِیْتُنِیْ ثُمَّ یُحْیِیْنِ ۙ وَالَّذِیْٓ اَطْمَعُ اَنْ یَّغْفِرَ لِیْ |
| چې مړکوی به ما \| بیا به ژوندې کوی ما \| او هغه رب \| چې امید لرم زه \| چې اوبه ښښی \| ماته \| |
| راته په وخت مرګ راکوی\| اوبیابه مې ژوندې کوی\| اوهغه (الله ﷻ) چې دکوم نه زه امیدلرم |
| خَطِیْٓـَٔتِیْ یَوْمَ الدِّیْنِ ۭ |
| ګناهونه زما \| په ورځ دجزاء (قیامت) \| |
| چې زماګناهونه به دقیامت په ورځ اوبخښی \| |

**قوله تعالی**:- وَالَّذِیْ هُوَ یُطْعِمُنِیْ وَیَسْقِیْنِ ۙ

**زما الله څوک دې؟** حضرت خلیل الله ﷺ دخپل رب صفتونه بیانوی.چه زه خودې صفتونو والا درب عبادت کونکې یم.دهغهٔ نه سوا بل دهیچا عبادت به نه کوم.وړومبې صفت داچه هغه زما خالق دې. هم هغهٔ اندازه مقررکړې ده.اوهم هغه دمخلوقاتو هغې طرف ته رهبری کوی.دویم صفت داچه هغه حقیقی هادی دې.چاله چه غواړی په خپله لارئې روانوی.چاله چه غواړی په غلط لارئې روانوی.دریم صفت زما درب دادې.چه هغه رزاق دې.دزمکې اوآسمان ټول اسباب هغهٔ پیداکړی دی.دوریځو پورته کول، خوروِل، دهغې نه باران وروِل،په هغې سره زمکه ژوندئ کول ( شنه کول) بیا پیداوار زرغونول هم دهغهٔ کار دې.هم هغه خوږې او تنده ماتونکې اوبه مونږته راکوی.اوخپل نورمخلوق ته هم.غرض داچه خوراک څکاک ورکونکې هم هغه دې.ورسره بیماری او تندرستی هم دهغهٔ په لاس کښې ده.

دمکروه څیزونو نسبت الله ﷻ ته نه دې پکار:-لیکن دخلیل الله علیه السلام د ادب کمال اوګوری چه دبیمارئ نسبت ئې خوځپل طرف ته اوکړو.اودشفا نسبت ئې الله تعالی طرف ته اوکړو.اګرچه بیماری هم دهغهٔ قضاء اوقدرت سره اودهغهٔ جوړشوی څیزدې. هم دا لطافت د سورهٔ فاتحه په دعاکښې هم دې.چه د انعام اوهدایت اسناد خود عالم رب طرف ته شوې دې.اود غضب فاعل ئې حذف کړې دې.اوضلالت ئې بنده طرف ته منسوب کړې دې.په سورهٔ جن کښې دجناتو قول هم اوګورئ.چه هلته هغوی ونیلی دی.چه مونږته معلومه نه ده چه د زمکې مخلوق سره د بدئ اراده کړې شوې ده.یادوی سره ددوی رب د خیر اراده کړې ده؟ دلته هم دخیرنسبت رب طرف ته شوې دې.اود بدئ په اراده کښې دانسبت نه دې ښکاره کړې شوې.دغه شان داآیت هم دې.چه کله زهٔ بیمارشم.نوزما په شفا باندې ددې الله تعالی نه سوا بل څوک قادرنه دې.په دوائی کښې تاثیرپیداکول هم دهغهٔ د وس څیزدې.په مرګ اوژوند باندې هم قادرهغه دې.ابتداء او انتهاء دهغهٔ په لاس کښې ده. هم هغهٔ رومبې پیدانش کړې دې.هغه به دوباره پیداکول کوی.په دنیا اوآخرت کښې دګناهونوپه بخښلوهم هغه قادردې.هغه چه څه غواړی کوی.غفور اورحیم دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبِّ | هَبۡ لِیۡ | حُکۡمًا | وَّاَلۡحِقۡنِیۡ | |
| اے ربه زما | راکړه ماته | حکم (حکمت) | او پیوست کړې ما | |
| اې زما ربه ماته حکمت (د دین پوهه) راکړه \| اوما په | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِالصّٰلِحِیۡنَ ۝ | وَاجۡعَلۡ لِّیۡ | لِسَانَ صِدۡقٍ | فِی الۡاٰخِرِیۡنَ ۝ | وَاجۡعَلۡنِیۡ | |
| دصالحانو سره | اواوګرځوه ما | ژبه د صدق | په روستو خلقو کښې | اواوګرځوه ما | |
| خپلو نیکانوبندګانو کښې شامل کړه \| او زما دنیکنامئ ذکر په راتلونکو نسلونو کښې جاری اوساته | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنۡ وَّرَثَةِ | جَنَّةِ النَّعِیۡمِ ۝ | وَاغۡفِرۡ | لِاَبِیۡۤ | اِنَّهٗ کَانَ | مِنَ الضَّآلِّیۡنَ ۝ |
| دوارثانو | دجنت دنعمتونونه | اواوبښه | پلار زما | بیشکه چې دې هغه | دګمراهانونه |
| اوما دنعمتونو نه ډک جنت وارث کړه \| او زما پلار هم اوبښهٔ \| بیشکه هغه په ګمراهانو کښې شامل دې | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَا تُخۡزِنِیۡ | یَوۡمَ | یُبۡعَثُوۡنَ ۝ | یَوۡمَ | لَا یَنۡفَعُ |
| اومهٔ شرمنده کوه ما | په هغه ورځ | چې راپورته کولې به شي دا خلق | په هغه ورځ | چې څه فانیده به نهٔ کوی |
| اوپه هغه ورځ مې مه شرموه \| چې خلق به بیا راژوندی کړی شی \| په کومه ورځ چې به نه | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَالٌ | وَّلَا بَنُوۡنَ ۝ | اِلَّا | مَنۡ | اَتَی اللّٰهَ | بِقَلۡبٍ سَلِیۡمٍ ۝ | |
| مال | اونهٔ اولاد | ماسوا | دهغه چانه | چې راشی الله ته | په زړهٔ سلامت سره | |
| مال فائده ورکوی او نه اولاد \| خو څوک چې الله ﷻ ته (دشرک اوګناهونونه) پاک زړهٔ یوسی | | | | | | |

**قوله تعالی:- رَبِّ هَبۡ لِیۡ حُکۡمًا**

اخرکښې د ابراهیم علیه السلام یو څو دعا ګانې:دحُکم نه مراد عام عقل الهامی کتاب اونبوت دې.هغوی دالله ﷻ نه دعاکوی چه ماته داڅیزونه رانصیب کړې.په دنیا اوآخرت کښې مې په نیکانوخلقوکښې شامل کړې.په صحیح حدیث کښې دی چه رسول کریم ﷺ هم په آخری وخت کښې دعا غوښتلې وه چه اې الله! په اعلی

رفيقانوکښې مې ملاوکړې.درې ځل ئې دا دعاکړې وه(۱).په يوحديث کښې دنبي کريمﷺ دادعا هم نقل ده.((اَللّٰهُمَّ اَحْيِنَا مُسْلِمِيْنَ وَاَمِتْنَا مُسْلِمِيْنَ وَاَلْحِقْنَا بِالصَّالِحِيْنَ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا مُبَدِّلِيْنَ)) (۲)يعنی اې الله! مونږ په اسلام باندې ژوندې اوساته،اودمسلمانئ په حالت کښې مرګ راکړې،اوپه نيکانوکښې مو ملاو کړې،په داسې حال کښې چه نه رسوائي وی نه تبديلي.

بيابله دعاکوی چه زمانه پس هم زما ذکرخيرپه خلقوکښې جاري وی.خلق په نيکو خبروکښې زما اقتداکوی.الله تعالی هم دهغهٔ ذکرپه روستو نسلونوکښې باقي اوساتلو.هر يوپه هغهٔ باندې سلام ليږی. الله تعالی دهيڅ يونيك بنده نيکی نه بيکاره کوی.يوه دنيا ده چه دهغوی په ژبودهغوی تعريف او صفت جاري دې.په دنياکښې هم الله تعالی هغوی ته اوچت شان اوخير ورکړو.عام طورباندې دهر مذهب اوملت خلق خليل اللهﷺ سره محبت ساتی.اودعاکوی چه زما ذکرخيرڅنګه په دنياکښې باقي دې.هلته په آخرت کښې هم جنتي جوړکړې شم.اواې الله! زما ګمراه پلارهم معاف کړې.ليکن دخپل کافر پلار دپاره دااستغفار کول په يوه وعده باندې وو.کله چه هغهٔ ته ښکاره شوه.چه هغه (پلار) دالله دشمن دې.کله چه هغه په کفرباندې مړشو.نودهغهٔ دزړهٔ نه دهغهٔ عزت اومحبت ختم شو.اواستغفار کول ئې هم پريښودل.ابراهيم ډيرصفا زړهٔ والا اوصبرناك وو.مونږته هم چه څنګه د ابراهيمﷺ په طريقه باندې دتلوحکم ملاودې هلته داهم فرمائيلی شوی دی.چه په دې خبره کښې دهغوی تابعداری مه کوئ.بيا دعاکوی.چه مادقيامت د ورځې د رسوايئ نه بچ کړې.کله چه ټول مخکښې روستو مخلوق ژوندی شی.اوپه يوميدان کښې به ولاړوی.رسول اللهﷺ فرمائی.چه دقيامت په ورځ به دحضرت ابراهيمﷺ خپل پلارسره ملاقات اوشی.هغه به اووينی چه دهغهٔ مخ به د ذلت او ګردوغبارنه ګنده وی(۳).په بل روايت کښې دی.چه هغه وخت به هغوی دالله تعالی په درباركښې عرض اوکړی.چه اې پروردګارا ستا ماسره وعده ده.چه مابه دقيامت په ورځ نه رسواکوې.الله تعالی به اوفرمائی.واوره جنت خوپه کافرباندې قطعًا حرام دې(۴).په بل روايت کښې دی چه ابراهيمﷺ به خپل پلارپه دې حالت کښې اووينی اوبه فرمائی.چه اوګوره ما تاته نه وئيل چه زما نافرمانی مه کوه.پلاربه جواب ورکړی چه ښه اوس به نه کوم.هغوی به دالله تعالی په درباركښې عرض اوکړی.چه اې پروردګار! تا ماسره وعده کړې ده چه په دې ورځ به مانه رسواکوې.اوس به ددې نه زياته څه رسوائي وی.چه زماپلار دداسې رحمت نهلرې دې.الله تعالی به اوفرمائی.چه اې زماخليل!ماخوجنت په کافرانوباندې حرام کړې دې. بيابه اوفرمائی اې ابراهيم!اوګوره ستادخپولاندې څه دی؟هغویﷺ به لاندې اوګوری چه يوبدشکله وروکې ځناور په ختو او اوبوکښې لت پت ولاړدې.چه هغه به دخپونه اونيولې شی جهنم کښې به اوغورزولې شی(۵).حقيقت کښې هم دغه به دهغوی پلاروی. چه هغه به په دې شکل کښې شوې وی.اوخپل مقرر ځائې ته به اورسولې شی.

**قيامت کښې به صرف ايمان پکاررائحی مال اولاو نه**:پدغه ورځ که انسان خپله فديه مال سره اداکول اوغواړی. اګرچه دټولې دنيا خزانې ورکړی ليکن هيڅ فائده به نه وی.نه به په دغه ورځ اولاد فائده ورکوی که ټولې زمکې والا په خپله بدله کښې ورکول اوغواړی.بيابه هم فائده نه وی.په دغه ورځ نفع ورکونکې څيزايمان اخلاص،اود شرك اواهل شرك نه بيزاری ده.دچا زړهٔ چه صالح وی.يعنی دشرك او

---

(۱) صحيح بخاری کتاب المغازی باب مرض النبی صلی الله عليه وسلم ووفاته : ٤٤٣٧.

(۲) احمد: ٤٢٤/٣. وسنده صحيح.

(۳) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الشعراء باب ﴿ ولا تخزنی يوم يبعثون........﴾ ٤٧٦٨.

(۴) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الشعراء باب ﴿ ولا تخزنی يوم يبعثون........﴾ ٤٧٦٩.

(۵) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالی ﴿ واتخذالله ابراهيم خليلا﴾ : ٣٣٥٠.

کفرخیرنوالی نه صفا وی.الله رښتوني مني.قیامت یقیني مني.په دوباره ژوندی کیدو باندي ایمان لري.دالله د توحید منونکې وی.عمل کونکې وی.په نفاق وغیره سره ئې زړۀ مریض نه وی.بلکه د ایمان اواخلاص اونیك عقیدې سره ئې زړۀ صحیح اوتندرست وی.د بدعتونونه نفرت لري.او سنت سره اطمینان او الفت لري ا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاُزْلِفَتِ | الْجَنَّةُ | لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿۹۰﴾ | وَبُرِّزَتِ | الْجَحِيْمُ | |
| او نزدې به کړې شي | جنت | دپاره دپرهیزګارانو | او ښکاره به کړې شي | دوزخ | |

او په کومه ورځ چې بۀ نیکانو ته جنت نزدې کړې شي ا......او ګمراهانو ته بۀ دوزخ ښکاره کړې شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِلْغٰوِيْنَ ﴿۹۱﴾ | وَقِيْلَ | لَهُمْ | اَيْنَمَا | كُنْتُمْ |
| دپاره د ګمراهانو | اواوبه وئیلې شي | هغوئ ته | کوم ځائې دي هغه معبودان | چې وئ تاسو |

او ورته به اووئیلې شي اچې هغه معبودان مو څه شول؟ چې تاسو به ئې دالله د عبادت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تَعْبُدُوْنَ ﴿۹۲﴾ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | هَلْ يَنْصُرُوْنَكُمْ | اَوْيَنْتَصِرُوْنَ ﴿۹۳﴾ | |
| چې عبادت به موکولو | بې دالله نه | ایا مدد کوی هغوئ ستاسو | یا مدد کوی دخان خپل | |

نه بغیر عبادت کولو ایا هغوئ نن ستاسو مدد کولې شي؟ یا بدله اخستې شي ؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَكُبْكِبُوْا | فِيْهَا | هُمْ | وَالْغَاوٗنَ ﴿۹۴﴾ | وَجُنُوْدُ اِبْلِيْسَ |
| نو اوبۀ غورزولې شي نسکور | په هغې کښې | هغوئ | او ګمراهان | او لښکر دابلیس |

نو بیا بۀ دغه معبودان او ګمراهان ټول په دوزخ کښې پرمخې واچولې شي او دشیطان لښکرې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَجْمَعُوْنَ ﴿۹۵﴾ | قَالُوْا | وَهُمْ | فِيْهَا | يَخْتَصِمُوْنَ ﴿۹۶﴾ |
| ټول | اووائی به هغوئ | او حال داچې هغوئ به | په هغې کښې | جګړه کوی |

به ورسره هم وی انو کافران به په دوزخ کښې یو بل سره جګړې کوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تَاللّٰهِ | اِنْ كُنَّا | لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۹۷﴾ | اِذْ نُسَوِّيْكُمْ | |
| قسم په الله دي اچې وو مونږه | خامخا په ګمراهئ ښکاره کښې | | چې برابر ولئ مونږ تاسو | |

اوداسې به وائی اچې قسم مونږ په څرګند ګمراهئ کښې پراته ووا چې تاسومو د رب

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۸﴾ | وَمَآ اَضَلَّنَآ | اِلَّا الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۹۹﴾ | فَمَا لَنَا | |
| درب العالمین سره | اونۀ وو ګمراهه کړی مونږه | مګر مجرمانو خلقو | پس نشته دې مونږ لره | |

العالمین سره برابر ګڼرلئ ا اومونږ خو بل چا نۀ بلکه دې مشرانو مجرمانو ګمراه کړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ شَافِعِيْنَ ﴿۱۰۰﴾ | وَلَا صَدِيْقٍ | حَمِيْمٍ ﴿۱۰۱﴾ | فَلَوْ اَنَّ | لَنَا | |
| څوك سفارش كونكې | اونۀ دوست | خوږ مخلص | پس کاش که وې | مونږ لره | |

نو اوس هیڅوک زمونږ سفارشی نشته دې ا اونه څوک اخلاص مند ملګرې شته ا نو څنګه به

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَرَّةً | فَنَكُوْنَ | مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۲﴾ | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ |
| یو ځل بیا واپس تلل | نو شو به مونږه | دمومنانونه | بې شکه | په دې (قیصه) کښې |

ښه وې که(دنیا ته) یو ځل دواپس تلو موقع راکولې شوې ا نو مونږ به مسلمانان شوی وو ا بیشکه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَاٰيَةً ؕ | وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ۝ | وَاِنَّ | رَبَّكَ | لَهُوَ | |
| خامخا نښه دعبرت ده | اونه دی اکثر ددوئ | مؤمنان | او بيشکه | رب ستا | خامخا هم هغه | |
| په دې واقعه کښې لوئې سبق پروت دې\| او ددوئ اکثر خلق ايمان نه راوړی \|اوبيشکه رب ستا | | | | | | |
| الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ۝ | كَذَّبَتْ | قَوْمُ نُوْحِ | الْمُرْسَلِيْنَ۝ | | |
| غالب دې | مهربانه دې | دروغ اوګڼړل | قوم دنوح | رسولان | | |
| ډير زبردست او مهربان دې \|دنوح عليه السلام قوم پيغمبران دروغژن اوګڼړل\| | | | | | | |

قوله تعالى:- وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ۝

**د نيکئ نيکه اودبدئ بده بدله اودکافرانود بدحالت بيان:-** کوموخلقوچه نيکئ کړې وې،دګناهونونه ئې خان ساتلې وو.جنت به په دغه ورځ هغوی سره نزدې هغوی ته مخامخ زينت اوښائست سره موجود وی.او سرکشی کونکوډپاره به دغه شان جهنم ښکاره وی.دهغې نه به يوسټ راوخي چه هغه به ګنهګارو طرف ته په غضبناکو سترګو سره ګوری.اوداسې شوربه جوړکړی.چه زړونه به وارخطاء شی.خيګربه په ريدو شی.او مشرکانوته به په رټلواوملامتيا سره اوفرمائيلې شی چه ستاسوهغه باطل معبودان چرته دی دچاچه به تاسودالله نه سوا عبادت کولو.آيا هغوی ستاسوڅه مددکولې شی.يا دخپل خان څه مددکولې شی؟ نه نه بلکه عبادت کونکی اومعبودان ټول به دوزخ کښې اَلْتِه رازوړندکړې شی.او سوزيدلې تيکي به شی.تابع اومتبوع ټول به لاندې باندې جهنم ته اوغورزولې شی.ورسره به د ابليس ټول لښکرهم داول نه واخله ترآخره پورې وی.هلته به کمزوری خلق لويوخلقوسره جهګړه کوی.او ورته به وائی چه مونږټول عمرستاسو اومنله.نن تاسو دعذابونونه مونږولې نه خلاصوئ؟ رښتيا خودادی چه مونږ بالکل ګمراه وو.د لارې نه لرې شوی وو.چه ستاسوحکمونه مودالله دحکمونوپه شان ګڼړلی وو.او رب العالمين سره مو ستاسوهم عبادت کولو.ګويا تاسومو رب سره برابر ګڼړلی وئ.افسوس چه مونږ لره په دې غلط اوخطرناك لاره باندې مجرمانو اوساتلو.اوس خو زمونږڅوك سفارش کونکې هم نشته. خپل مينځ کښې به تپوسونه کوی چه آيا څوك زمونږ شفاعت کونکې شته چه هغه زمونږ شفاعت اوکړی.يا داسې هم کيدې شی چه مونږدوباره دنيا طرف ته واپس کړې شو؟او هلته لاړشو.تراوسه پورې چه مونږکوم عملونه کړی وودهغې خلاف عمل اوکړو.چرته چه زمونږڅوك سفارشی مونږته په نظرنه راځی هلته څوك نزدې رښتونې دوست هم نه ښکاری. چه هغه زمونږ همدردی اوغمخواری اوکړی. خکه چه هغه ته پته ده.چه که يوصالح سړی سره زمونږ دوستی وې.نوهغهٔ به نن ضرورمونږته نفع راکړې وې.اوکه څوك زمونږ دزړهٔ محبوب وې نوضروربه زمونږ شفاعت دپاره رامخکښې شوی وې. اوکه مونږته بيا دنياته تلل ملاويدلې.نومونږبه په خپله ددې بدوعملونو پوره والي کړې وې.ليکن حق خو دادی چه که دا بدبخت ازلی دوباره هم دنياته راوستلې شی نوهم هغه بدعملونه به دوباره شروع کړی.په سورهٔ ص کښې هم ددې جهنم والو دجهګړې بيان کولو کښې الله تعالى فرمائيلی دی چه د دوی دا جهګړه به په يقين سره وی.

قوله تعالى:- اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ؕ

ابراهيم عليه السلام چه خپل قوم ته څه اوفرمائيل اوکوم دليلونه ئې چه هغوی ته ورکړل.اوپه هغوی ئې توحيد واضح کړو.په هغې کښې يقيناًدالله الوهيت باندې اودهغهٔ په يووالی باندې صفادليل موجود دې. ليکن بياهم اکثرخلق دايمان نه منع شوی دی.په دې کښې هم څه شك نشته چه ستاپالونکې پروردګار پوره غلبې اوقوت والا اوبخښونکې اورحم والادې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَذَّبَتْ | قَوْمُ نُوحٍ | الْمُرْسَلِينَ ۚ | إِذْ قَالَ | |
| دروغ اوګڼړل | قوم دنوح | رسولان | كله چې اوونيل | |

ادنوح عليه السلام قوم پيغمبران دروغژن اوګڼړل | څه وخت چې د هغوئ (دبرادرئ)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | أَخُوهُمْ | نُوحٌ | أَلَا تَتَّقُونَ ۚ | إِنِّي | لَكُمْ | رَسُولٌ |
| هغوئ ته | رور دهغوئ | نوح عليه السلام | آيا نۀ يريږئ تاسو | بيشكه زۀ | دپاره ستاسو | رسول |

رور نوح عليه السلام ورته اوونيل اچې ايا تاسو دالله ﷻ نه نه ويريږئ ؟ ابيشكه زه تاسوته امانت دار پيغمبر

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَمِينٌ ۚ | فَاتَّقُوا اللَّهَ | وَأَطِيعُونِ ۚ | وَمَا أَسْأَلُكُمْ | عَلَيْهِ |
| امانتدار يم | پس اويريږئ دالله نه | او خبره اومنئ زما | اونۀ غواړم زۀ ستاسو نه | په دې باندې |

راليږلي شوې يم| نو دالله ﷻ نه اوويريږئ |او زما تابعداري اوكړئ| او زۀ ستاسو نه څه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | أَجْرٍ ۚ | إِنْ أَجْرِيَ | إِلَّا | عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۚ | فَاتَّقُوا اللَّهَ |
| څه | اجر | نۀ دې اجر زما | مگر | په رب دمخلوقاتو باند دې | نو اويريږئ دالله نه |

اجر نه غواړم |زما اجر خو درب العالمين په ذمه دې |نو الله ﷻ نه اوويريږئ |

وَأَطِيعُونِ ۚ

اوخبرد اومنئ زما |

اوزما تابعداري اوكړئ|

قوله تعالى:- فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۚ
د نوح عليه السلام بې لوڅه ذ توحيد دعوت: په زمكه باندې چه دټولونه مخكښې كله بُت پرستي شروع شوه. او خلق دشيطان په لارو روان شول.نوالله تعالى دخپلو اولوالعزم رسولانوسلسله دحضرت نوح عليه السلام نه شروع كړله. هغوى راغلل اوخلق ئې دالله دعذابونونه اويرول.اودهغۀ دسزاګانونه ئې هغوى خبركړل. ليكن هغوى دخپلو ناپاكو عادتونونه منع نه شول.دغيرالله عبادت ئې پرې نخودلو.بلكه حضرت نوح عليه السلام ته ئې دروغژن اوونيل.دهغۀ دشمنان جوړشول.اوهغۀ ته ئې تكليفونه رسول شروع كړل. د حضرت نوح عليه السلام دروغژن ګنړل ګويا دټولو پيغمبرانونه انكاركول وو.په دې وجه آيت كښې اوفرمائيلى شو چه دنوح عليه السلام قوم پيغمبران دروغژن اوګڼړل.

حضرت نوح عليه السلام مخكښې خوهغوى ته دالله تعالى نه دويرې ساتلونصيحت اوكړوچه تاسوكوم د غيرالله عبادت كوئ.نودعذاب الله نه تاسونه ويريږئ.لكه څنګه ئې چه دتوحيد دتعليم نه پس دخپل رسالت تلقين اوكړو.اووې فرمائيل.چه زه تاسوطرف ته دالله رسول جوړشوې راغلې يم.اوزۀ امانت داريم.دهغۀ پيغام هوبهوهغه دې كوم چه تاسوته اوروم.پس تاسوله خپل زړونه دالله د ويرې نه ډك ساتل پكاردى. او زما تولې خبرې بغير دڅه چل ول نه منل پكاردى.

قوله تعالى:- وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۚ
د هر نبى بيان صرف دالله ﷻ دپاره وو:-او واورئ زه ستاسونه په دې تبليغى رسالت باندې څه اجرت نه غواړم.زما مقصد ددې نه صرف دادې چه زمارب ماته ددې بدله او ثواب راكړى.پس تاسو د الله تعالى

نه اويرېږئ.اوزما وينا اومنئ.زما رښتيا اوزما خيرخواهي په تاسوښه ښکاره ده.زما ديانت داری نوره
هم په تاسو واضحه ده.

قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴿١١١﴾
اووئيل هغوئ |ايامونږه اومنو|ستا|حال داچې پيروی کړی ده ستا | رذيلانو خلقو
|هغوئ اووئيل ايامونږ په تاباندې ايمان راوړو| حالانکه ستا تابعداری نيچ خلقو کړې ده

قَالَ وَمَا عِلْمِيْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١١٢﴾ اِنْ حِسَابُهُمْ
اووئيل نوح |اونشته علم ماته | په هغه عمل | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | نه دې حساب ددوئ
نوح ﷺ اووئيل چې ماته خو معلوم نه دی چې هغوئ څه کوی ؟ |د هغوئ معامله

اِلَّا عَلٰى رَبِّيْ لَوْ تَشْعُرُوْنَ ﴿١١٣﴾ وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٤﴾
مګر | په رب زما دې | که پوهيږئ تاسو | اونه يم زه | شړونکې دمومنانو |
زما درب سره ده | کاش چې تاسو په خبره پوهيدلئ |اوزه مومنان دخان نه شړلې نشم

اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿١١٥﴾ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰنُوْحُ
نه يم زه | مګر | يرونکې يم | ښکاره | اووئيل هغوئ | که چرې | منع نه شوې ته | اے نوح |
زه خو نور څه نه يم خو يو ښکاره يرونکې يم |هغوئ اووئيل چې ائې نوح ﷺ که ته (ددې خبرونه) منع نه

لَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْمَرْجُوْمِيْنَ ﴿١١٦﴾ قَالَ رَبِّ اِنَّ
نو خامخا به شې ته | دويشتل شوو نه په ګټه يا په کنخلو | اووئيل نوح عليه السلام | اے ربه | بيشکه |
شوې انو خامخا به سنګسار کړې شې | نوح ﷺ دعا اوکړه چې ائې زمار به ! زما

قَوْمِيْ كَذَّبُوْنِ ﴿١١٧﴾ فَافْتَحْ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا
قوم زما | دروغ اوګڼلم زه | پس فيصله اوکړه | په منځ زما | او په منځ ددوئ کښې | صفا فيصله |
قوم ماته دروغژن اووئيل | نو ته زما او ددوئ په مينځ کښې فيصله اوکړې

وَّنَجِّنِيْ وَمَنْ مَّعِيَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٨﴾ فَاَنْجَيْنٰهُ
او نجات راکړه ماته | او هغه چاته | چې زما سره دي | دمومنانونه | پس نجات ورکړو مونږ هغه له
اومالہ او زما ايماندارو ملګرو ته نجات راکړې| بيا مونږ هغه ته

وَمَنْ مَّعَهٗ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿١١٩﴾ ثُمَّ اَغْرَقْنَا بَعْدُ
او هغه چاله | چې دهغه سره وو | په کشتئ | ډکه کښې | بيا غرق کړل مونږه | روستو دهغوئ نه
اوهغه سره په بيړئ کښې سوارهٔ ملګروته نجات ورکړو|اوبيامو باقی پاتې خلق ډوب کړل

الْبٰقِيْنَ ﴿١٢٠﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٢١﴾
باقی پاتې خلق|بيشکه په دې کښې |خامخا نښه ده| اونه وو | اکثر دهغوئ نه |مومنان (منونکی)
بيشکه په دې واقعه کښې لوئې عبرت دی | او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړی

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاِنَّ رَبَّكَ | لَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ |
| او بیشکه رب ستا | خامخا هغه | غالب دی | مهربانه دی |
| اوبیشکه ستارب غالب او مهربان ذات دی | | | |

قوله تعالى:- قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ

**د قوم بې وقوفانه جواب:-** دنوح علیه السلام قوم دپیغمبر دپیغام جواب ورکړو.چه یوځو پریوتی او دروغژنوخلقو ستا خبره منلې ده.زمونږنه دانه شی کیدې چه ددې رذیلانو ملګرتیا اوکړو.اوستا خبره اومنو.ددې په جواب کښې دالله پیغمبرجواب ورکړو.دازما فرض نه دی چه څوك حق قبلولو دپاره راشی چه زهٔ دهغهٔ نه دهغهٔ د قوم اوپیشې معلومې کړم.په دننه حالاتوباندې خبریدل اوحساب اخستل دالله کاردې. افسوس تاسودومره هم نه پوهیږئ.ستاسوداخواهش پوره کول زمادااختیارنه بهردی.چه زهٔ ددې مسکینانو نه خپل محفل خالی کړم.زهٔ خودالله دطرفه یو خبرورکونکې یم.چه څوك هم زما خبره اومنی هغه زما،اوڅوك چه اونه منی هغه دې خپله پوهه شی که رذیل وی،که مالداروی اوکه غریب وی.څوك چه زما اومنی هغه زمادې اوزهٔ دهغهٔ یم۔

قوله تعالى:- فَاَنْجَيْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ فِی الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ

**فتح دحق وی شکست دٔ باطل:-** ډیرې مودې پورې حضرت نوح علیه السلام په هغوی کښې اوسیدلو.دشپې ورځې، په پټه اوپه ښکاره ئې هغوی ته دالله دلارې دعوت ورکولو.لیکن څومره چه هغه په خپله نیکئ کښې زیات شو.هغوی په خپلې بدئ کښې زیات شول.آخرپه سخت ورته صفائې اووئیل چه که اوس دې مونږته دخپل دین دعوت راکړو.نومونږبه تاپه کانړو اولو اومړه دې کړو. هغوی هم خپل لاسونه د الله ﷻ په دربارکښې اوچت کړل.دقوم د دروغژن ګڼړلوشکایت آسمان طرف ته اوختلو.اود فتح دعائې اوکړله. وې فرمائیل ای الله! زهٔ مغلوب اوعاجز یم.زما مدد اوکړه.زما ملګری هم بچ کړې.بس الله ﷻ د هغهٔ دعا قبوله کړله.دانسانانو،څناورو،اود سامان اسباب نه پوره ډکې کشتئ کښې دسوریدلوحکم ئې ورکړو.ددې نه پس دآسمان او زمکې نه طوفان راوختلو.اود مخ د زمکې کافران ئې د جرړې نه ختم کړل.یقیناً دا واقعه هم عبرتناکه ده.لیکن اکثرخلق یقین نه کوی.په دې کښې هیڅ شك نشته.چه رب ډیرې غلبې والادې.لیکن هغه مهربان هم ډیردې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | كَذَّبَتْ | عَادُ |
| | | | | | دروغ اوګڼړل | عادیانو |
| | | | | | .....عادیانو خپل | |
| الْمُرْسَلِيْنَ | اِذْ | قَالَ | لَهُمْ | اَخُوْهُمْ | هُوْدٌ | اَلَا تَتَّقُوْنَ |
| رسولان | کله چې | اووئیل | هغوئ ته | رور دهغوئ | هود | آیا نهٔ یریږئ تاسو |
| پیغبران دروغژن اوګڼړل | کله چې دهغوئ رور هود اووئیل اچې آیا تاسو دالله دعذاب نه نه ویریږئ | | | | | |
| اِنِّیْ لَكُمْ | رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ | | فَاتَّقُوا اللّٰهَ | | وَاَطِيْعُوْنِ | |
| بیشکه زهٔ ستاسو دپاره | رسول امانتدار یم | | نو اویریږئ دالله نه | | او خبره اومنئ زما | |
| واورئ،زه خو تاسو دپاره امانت دار پیغمبر یم انو الله نه اویریږئ | | | | | او زما تابعداری اوکړئ | |

وَمَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعٰلَمِينَ ۝

اونهٔ غوارم زهٔ ستاسو نه | په دې باند | هيڅ اجر | نهٔ دې اجر زما | مګر | په رب العالمين باندې دې |

اوزهٔ ستاسو نه په دې دعوت څه بدله نه غوارم ازما بدله خو درب العالمين په ذمه ده

أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ ءَايَةً تَعْبَثُونَ ۝ وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ

آيا تاسو جوړوئ | په هر اوچت ځائې باندې| نښه | عبث بې فائدې | او جوړوئ تاسو | قلاګانې

آيا تاسو په هراوچت ځائې باندې يادګارونه جوړوئ | او دنګې پخې ماڼۍ

لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ ۝ وَإِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ

شايد چې تاسو به | هميشه اوسئ | اوکله چې | حمله کوئ تاسو | نو حمله کوئ |

اباودئې | لکه چې هميشه به دلته اوسيږئ |او چې په چا حمله کوئ نو ډيره د ظلم حمله

جَبَّارِينَ ۝ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۝ وَاتَّقُوا الَّذِيٓ

په جبر يعني ظلم سره | پس اويريږئ | دالله نه | او خبره اومنئ زما | او اويريږئ | دهغه ذات نه |

پرې کوئ | نو الله ﷻ نه اوويريږئ | او زما تابعداری اوکړئ| اودهغه ذات نه اوويريږئ

أَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُونَ ۝ أَمَدَّكُمْ

چې امداد ئې کړې دې ستاسو | په هغه څيز | چې تاسو ته معلوم دې | امداد ئې کړې دې ستاسو سره

چاچې ستاسو په هغه څيزونو سره مدد اوکړو| کوم چې تاسوته معلوم دې ايعنی هغه

بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ ۝ وَجَنّٰتٍ وَعُيُونٍ ۝ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ

په څاروو سره | او په خامنو سره | او په باغونو او چينو سره | بيشکه زهٔ | يريږم | په تاسو باند|

دڅاروو او اولاد په صورت کښې ستاسو مدداوکړو| اوپه باغونو اوچينو سره |ماته ستاسو په معامله

عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ۝

عذاب دورځې لوئې نه |

کښې دلوئې ورځې د عذاب نه ويره ده |

**قوله تعالى:- إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ۝**

**دهود عليه السلام خپل قوم ته وعظ** :- دحضرت هود عليه السلام قصه بيانيږی چه هغوی عاديان چه داحقاف اوسيدونکی وو.الله ﷻ طرف ته راوبلل.احقاف په ملك يمن کښې دحضرموت خواکښې شګلونوغرونو سره نزدې دې. ددوی زمانه دنوح عليه السلام دزمانې نه پس ده.په سورهٔ اعراف کښې هم ددوی ذکر تير شوې دې.چه دوی دقوم نوح جان نشين جوړکړې شو.اودوی ته ډيرزياته فراخی اومالداری ورکړې شوه.په ډير آرام ، طاقت اوقوت کښې پوره،مال اواولاد والا،فصلونه، باغونه، ميوې او غلې ډيرې زياتې، دولت او زر هم ډې،نهرونه اوچينې ځائې په ځائې،غرض داچه هرقسمه اسباب اوسهولت ورته حاصل وو.ليکن د رب دټولونعمتونو بې قدری کونکی اوالله تعالى سره شرك کونکی وو.خپل نبی ئې دروغژن اوګڼړلو. دې هم دهغوی نه وو.هغوی ئې ښه پوهه کړل، وې يرول دهمکيانې ئې ورکړې.خپل رسول کيدل ئې

ورته ښکاره کړل.دخپل اطاعت اود الله تعالی دعبادت او وحدانیت دعوت ئې ورکړو.لکه څنګه چه نوحﷺ ورکړې وو.خپل بې شرم کیدل اود دنیا طالب نه کیدل ئې بیان کړل.دخپل خلوص ذکرئې هم اوکړو.دوی چه به دفخر اوریا په طورخپل مال بربادولو.اوپه اوچتو اوچتو مشهورو غونډو باندې اوچت اوچت علامتونه دخپل قوت اومال ښکاره کولودپاره جوړول. ددې فضول کارنه هغوی لره دهغوی نبی هودﷺمنع کړل.څکه چه په دې کښې فضول دولت خرج کول،وخت بربادول،اومشقت اوچتول دی.چه ددې نه ددین دنیاهیڅ فائده اومقصدنه وی اونه ددې خیال کیدلې شي.لوئې لوئې پاخه اواوچت برجونه اومینارېه ئې جوړول.چه ددې باره کښې دهغوی نبی نصیحت اوکړو.چه آیاتاسوداګنړئ چه تاسوبه دلته همیشه اوسیږئ.ددنیامحبت ستاسونه آخرت هیرکړې دې.لیکن یادساتئ،ستاسودا خواهش بې فائدې دې.دنیاختمیدونکې ده.تاسوپخپله فناکیدونکی یئ.په یو قراءت کښې(کَاَنَّکُمْ خَالِدُوْنَ) دې.

**د ابوالدرداء مسلمانانو نصحیت:**-په ابن ابی حاتم کښې دی چه کله مسلمانانوپه غوطه کښې محلونه او باغونه جوړول په لویه پیمانه باندې دضرورت نه زیات شروع کړل.نوحضرت ابودرداءؓ په جمات کښې اودریدلو.وې فرمائیل چه د دمشق اوسیدونکو! واورئ! خلق ټول جمع شول.نوهغوی دالله دحمد او ثناء نه پس اوفرمائیل.چه تاسوته شرم نه راځی.تاسو خیال نه کوئ.چه تاسوهغه څه جمع کول شروع کړی دی چه هغه تاسونه خورئ.تاسوهغه کورونه جوړول شروع کړی دی چه داستاسو داوسیدو په کارنه راځی.تاسوهغه لرې اوچت آرزوګانې شروع کړی دی چه دهغې پوره کیدل ناممکن دی.آیا تاسو هیر کړل؟ ستاسونه مخکښې خلقوهم جمع کول اوسنبهال ساتل.او ډیر لوئې اوچت اوچت پاخه اومضبوط محلونه ئې جوړکړی وو.لوئې لوئې آرزوګانې ئې تړلې وې.لیکن نتیجه ئې داشوه.چه هغوی په دهوکه کښې پاتې شول.دهغوی جمع کړې شوی برباد شول.دهغوی کورونه اوکلې وران شول .عادیانو ته اوګورئ! چه دعدن نه واخله عمان پورې دهغوی اسونه او اوښان وو.لیکن نن هغه چرته دی؟ شته دې څوک داسې بیوقوف چه دقوم عاد میراث د دوه درهموپه بدله کښې هم واخلی.دهغوی دمال او کورونو بیانولوسره ئې دهغوی قوت اوطاقت بیان اوفرمائیلو.چه ډیر سرکش،متکبراوسخت وو.دالله نبیﷺ هغوی ته دالله نه د ویریدلو اودخپل اطاعت حکم ورکړو.چه د رب اطاعت اوکړئ.او دهغهٔ د رسول اطاعت اوکړئ.بیا ئې هغه نعمتونه وریادکړل.کوم چه الله تعالی په هغوی باندې انعام کړې وو.چه هغه هغوی پخپله هم منل.مثلاً څاروی څناور،اولاد، باغونه او دریابونه،بیائې خپله خطره ښکاره کړله.چه که تاسو زه دروغژن اوګنړلم.اوزما په مخالفت باندې کلك شوئ.نوپه تاسوبه دالله عذاب راشی.لالچ او ویره ئې ورته دواړه اوښودل.لیکن هیڅ فائده ئې اونکړله.

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالُوْا | سَوَآءٌ | عَلَيْنَآ | اَوَعَظْتَ |
| اوونیل هغوئ | برابره خبره ده | په مونږ باندې | که نصیحت کوې ته |

هغوئ جواب ورکړو چې مونږ دپاره برابر ده | که ته راته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ لَمْ تَكُنْ | مِّنَ الْوٰعِظِيْنَ ۝ | اِنْ هٰذَآ | اِلَّا | خُلُقُ | الْاَوَّلِيْنَ ۝ |
| یائهٔ کیږې ته | دنصیحت کونکونه | نهٔ دی دا خبری | مګر | عادتونه دی | دمخکښو خلقو |

نصیحت اوکړې اوکه اونه کړې | دا خو بس د پخوانو خلقو عادتونه دی | اومونږ

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَا نَحْنُ | بِمُعَذَّبِيْنَ ۝ | فَكَذَّبُوْهُ | فَاَهْلَكْنٰهُمْ ط |
| اونهٔ یو مونږه | چې عذاب به راکړې شی | نو دروغ اوګنړو هغوئ هغه | نو هلاک کړل مونږه هغوئ |

ته هیچرې عذاب نشی راکولې | نو هغوئ پیغمبردروغ اوګنړلو | نومونږ هغوئ هلاک کړل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ فِي | ذَٰلِكَ | لَآيَةً ۖ | وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم | مُّؤْمِنِينَ ۝ | وَإِنَّ رَبَّكَ |
| بیشکه په دي | کښي | خامخا يوه نښه ده | او نه دي اکثر ددوئ | منونکي | او بیشکه رب ستا |
| بیشکه په دي کښي د عبرت نښه ده \| او په دوئ کښي زیات خلق ایمان نه راوړي \|\| او | | | | | |
| لَهُوَ | الْعَزِيزُ | الرَّحِيمُ ۝ | | | |
| خامخا هغه | غالب دي | او رحم کونکي دي | | | |
| بیشکه ستا رب هغه ذات دي اچي غالب او مهربان دي\| | | | | | |

**قوله تعالی:- قَالُوا سَوَاءٌ عَلَيْنَا**

**نصیحت یئ حاصل نه کړو او تباه شول:-** دحضرت هود ﷺ داثرنه ډکوبیانونو او دهغوی د رغبت او ویرې نه ډکوخطباتوبه قوم باندې هیڅ اثراونه کړو.اوهغوی صفا اوونیل چه ته مونږته وعظ کوې اوکه نه کوې،نصیحت کوې اوکه نه کوې مونږ خوخپل عادتونه نه شو پریښودې.مونږستا خبره اومنو،دخپلو معبودانو نه بیزاره شو.دا یقینًا ناممکن دی.زمونږدایمان نه ته مایوسه شه مونږستا نه منو. په حقیقت کښې دکافرانوهم داحال دې.ددوی پوهه کول بې فائدې دی.الله تعالی خپل نبی آخرالزمان ﷺ ته هم دا اوفرمائیل چه پدې ازلی کافرانوباندې ستانصیحت بالکل اثرنه کوی.ددې نصحیت کولواوپوهه کولو نه پس به هم دوی دغه شان وی.لکه څنګه چه مخکښې وو.دوی قدرتی طورباندې دایمان نه محروم کړې شوی دی.چه په دوی باندې ستاد رب خبره رښتیا کیدونکې ده.دوی ته به ایمان نه نصیب کیږی.

**دهرې زمانې کافرانو هم یو شان عادت وو:-** د (خُلُقُ الْأَوَّلِينَ) دویم قراءت ((خَلْقُ الْأَوَّلِينَ)) هم دې.یعنی کومې خبرې چه ته مونږته کوې دا خو مخکښې خلقوکړې دی.لکه څنګه چه قریشونبی کریم ﷺ ته وئیلی وو. چه د مخکښې خلقوقصې دی.چه دا سحرماښام تاته وئیلې شی.دا یوبهتان دې.چه تا دخانه جوړکړې دې.اوڅه خلق دې دخان طرفدارکړی دی وغیره،دمشهور قراءت په لحاظ سره معنی دا شوه. چه په څه باندې مونږیو،هم دا زمونږ د پخوانو پلار نیکونومذهب دې.مونږ خوبه دهغوی په لاره ځو. دا هم غلط دی چه مونږته به عذاب راکولې شی.آخرداچه دهغوی د تکذیب اومخالف په وجه هغوی هلاك کړې شول.سخته تیزه سیلئ په هغوی باندې راولیږلې شوه.اوبرباد کړې شول.هم دا عاد اولی وو. چه دوی ته ارم ذات العماد وئیلې شوی دی .دا ارم دسام بن نوح دنسل نه وو.په عمدکښې دوی اوسیدل.ارم دحضرت نوح ﷺ د نوسی نوم دې.دیو ښارنوم نه دې.اګرچه دبعضی خلقونه داهم نقل دی.لیکن ددې قائل بنی اسرائیل دی.دهغوی نه اوریدلوسره نوروخلقوهم دغه ویناکړې ده.په حقیقت کښې ددې څه مضبوط دلیل نشته.په دې وجه قرآن د ارم ذکرکولوکښې فرمائیلی دی.چه (لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ)ددوی په شان نورخوك په ښارونوکښې نه دی پیداکړې شوی.که ددې نه مراد ارم ښاروو.نو داسې به نې فرمائیلی وو.چه ددې په شان بل یوښارنه دې جوړکړې شوې.د قرآن کریم په آیت کښې دی.( فَأَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوا فِي الْأَرْضِ ) عادیانوپه زمکه باندې تکبر اوکړو.او نعره ئې اولګوله.چه زمونږ نه زیات قوت والاخوك شته؟آیا دوی داهم هیرکړل.چه ددوی پیداکونکې ددوی نه هم زیات قوت والادې؟ په اصل کښې دوی زمونږدآیاتونونه انکار کولو.دامونږمخکښې بیان کړی دی.چه په دوی باندې صرف دغونی د سپیرمې دسوری برابرهوا پریښودې شوه.چه دهغوی ښارونه اوکورونه ئې دجرړې نه ختم کړل.چه په کوم ځائې تیره شوه هرڅه ئې صفاکړل.شنګار کولوسره ئې ټول څیزونه تباه کړل.دټول قوم سرونه جدا او تنه جدا کړې شوی وو.چه دالله عذاب ئې دهواپه شکل کښې راتلونکې اولیدلو.نوپه قلعه ګانو،محلونو اومحفوظ ځایونوکښې پټ شوی وو.په زمکه کښې ئې کندې اوکنستلې،نیم نیم بدنونه ئې په هغې

کښې ښکته کړل اومحفوظ شول.خود الله عذاب څه څیز منع کولې شي؟ دا یومنځ دپاره هم څه مهلت
او انتظارنه کوی.ټول نې هلاك کړل.اودا واقعه د روستو راتلونکوخلقودپاره یوه د عبرت نخښنه جوړه
کړې شوه.په دوی کښې اکثرخلق بیاهم بې ایمانه پاتې شول

كَذَّبَتْ ثَمُودُ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٤١﴾
| دروغ اوګڼړل | ثمودیانو | رسولان |
| (دغه شان) ثمودیانو پیغمبران دروغ اوګڼړل

إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ صَالِحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٤٢﴾ إِنِّي لَكُمْ
کله چې اوونیل| هغوئ ته | رور دهغوئ | صالح | ایا نۀ یریږئ تاسو | بیشکه زۀ | دپاره ستاسو
څه وخت چې ددوئ رور صالح عليه السلام دوئ ته اوونیل | ایا تاسو دالله نه نه ویرېږئ ازۀ ستاسو دپاره

رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٤٣﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٤٤﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ
رسول یم | امانتدار | پس اوویرېږئ دالله نه | او اطاعت اوکړئ زما | اونۀ غوارم زۀ ستاسو نه |
یو امانتدار پیغمبر یم انو دالله ﷻ نه اوویرېږئ ||او زما حکم اومنئ ||اوزه ستاسو نه په

عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٤٥﴾ أَتُتْرَكُونَ
په دې کار باند | څه بدله | نۀ ده بدله زما | مګر | په رب العالمین ده | ایا تاسو به پرېښودې شئ
دې څه اجر نه غوارم | زما بدله خو د رب العالمین په ذمه ده |........ ایا کوم څیزونه چې

فِيمَا هَاهُنَا آمِنِينَ ﴿١٤٦﴾ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿١٤٧﴾
په هغه څیزونو کښې | چې دلته په دنیا کښې دی | په داطمینان سره | په دې باغونو | او چینو کښې
دنیا کښې دی |تاسو په دې کښې په امن سره پرېښودې شئ ؟| (یعنی) په باغونو اوچینو کښې

وَزُرُوعٍ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ﴿١٤٨﴾ وَتَنْحِتُونَ
اوپه دې فصلونو|اوکجورو کښې|چې غونچکونه دهغې|پستې پخې ډکې دی| اوراکنئ تاسو (جوړوئ)
او په فصلونو او کهجورو کښې |دکومې غنچې چې نرمې او نازکې وی ||اوتاسو غرونه

مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا فَارِهِينَ ﴿١٤٩﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٥٠﴾ وَلَا تُطِيعُوا
دغرونو نه | کورونه | غرور کونکی | انو اوویرېږئ دالله نه | او خبره اومنئ زما | اومۀ منئ
تراشئ||اودفخر دپاره په کښې مانړئ جوړوئ |نو دالله نه اوویرېږئ||اوزما حکم تابعداری

أَمْرَ الْمُسْرِفِينَ ﴿١٥١﴾ الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا
حکم | داسراف کونکو خلقو | هغه (مسرفان) | چې فساد کوی | په زمکه کښې | اونۀ کوی کار
اوکړئ| اود زیاتی کونکو خبره مه منئ |چې په ملک کښې فساد خوروی ||اوسم کارئې دلاسه نه کیږی

يُصْلِحُونَ ﴿١٥٢﴾
داصلاح |

**قوله تعالى:- إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ صَٰلِحٌ**

**دحضرت صالح عليه السلام قوم ته خطاب:**-دالله تعالى دبنده اورسول صالح عليه السلام واقعه بيانيږي.چه هغه خپل قوم ثمودطرف ته رسول جوړشوی اوليږلې شو.داخلق عرب وو.په حجر نومې ښارکښې اوسيدل.دا د وادي القرى اوملك شام په مينځ کښې دي.دادعاديانونه پس اودابراهيميانونه مخکښې وو.شام طرف ته تللوسره ددوی ددې په دې ځائې باندې د تيريدلوبيان د سورة اعراف په تفسيرکښې مخکښې تيرشوی دې.دوی لره ددوی نبی الله طرف ته راوبلل.چه دوی دالله توحيد اومنی.اود حضرت صالح عليه السلام د رسالت اقرار اوکړی.ليکن دوی هم انکاراوکړو.اوپه خپل کُفرباندې کلك پاتې شول.دالله تعالى پيغمبرته ئې دروغژن اوونيل.سره ددې چه دالله تعالى نه دويريدلونصيحت ئې اوريدلو،خو پرهيزګاری ئې اختيارنه کړله.د رسول امين د موجودګئ باوجود ئې دهدايت لاره اختيارنه کړله.حالانکه دنبی صفا اعلان وو. چه زۀ خپل څه بوج په تاسوباندې نه اچوم.زۀ خوددې رسالت دتبليغ اجرصرف دالله تعالى نه غواړم. ددې نه پس ئې دالله تعالى نعمتونه هغوی ته وريادکړل.

**قوله تعالى:- أَتُتْرَكُونَ فِي مَا هَٰهُنَا آمِنِينَ**

**د دنيا ناپائيداری:**-صالح عليه السلام خپل قوم ته وعظ کوی.هغوی ته دالله تعالى نعمتونه وريادوی .او د هغۀ د عذاب نه ئې خبروی.چه هغه تاسوته فراخه روزی درکوی.هغۀ ستاسودپاره باغونه،چينې، فصلونه، اوميوې پيداکړی دی.په امن اوسکون سره ستاسود ژوند ورځې پوره کوی.تاسو دهغۀ په نافرمانئ کولو سره هم پدې نعمتونوکښې اوپدې امن وامان کښې نه شئ پاتې کيدلې.پدې باغونواوپه دې دريابونو کښې،په دې فصلونو اوپه دې باغونوکښې چه ددې غونچې د زياتوالی په وجه درنې وی.او لاندې رازوړندې وی.چه په دې کښې قط په قط تازه کهجوری ډيرې ښائسته ښکاری.چه د نرمو ښائسته خوږو اوخوندورونه ډکې دی.تاسو دالله جل جلاله په نافرمانئ کولوسره دې لره په آرام سره نه شئ بچ کولې.الله جل جلاله چه تاسو داوخت په دې مضبوطو، ښائسته اوچتو اوقيمتی کورونوکښې ساتلی يئ. دالله د توحيد اوزمادرسالت د انکارنه پس داهم په خپل ځائې نه شی پاتې کيدې.افسوس چه تاسو دالله دنعمت قدر نه کوئ.خپل وخت، خپلې روپئ بې ځايه بربادوئ.دانقش ونګار والا کورونه په غرونو کښې په ډير تکليف اومشقت سره،صرف د رياکارئ او لويئ دپاره،دخپل عظمت اوقوت خودلودپاره جوړوئ.چه په دې کښې هيڅ نفع نشته.بلکه ددې وبال ستاسوپه سرونو باندې راځی.پس تاسوله دالله جل جلاله نه ويريدل پکاردی.اوزمااتباع اوکړئ.دخپل خالق،رازق،انعام کونکی،احسان کونکی عبادت اودهغۀ فرمان برداری اودهغۀ توحيد طرف ته پوره متوجه شئ.چه ددې نفع به تاسوته په دنيااو آخرت کښې ملاوشی. تاسوله ددې شکراداکول پکاردی.دهغۀ تسبيح او تهليل کوئ. سحراومابنام دهغۀ عبادت کوئ.تاسوله دخپل دې موجوده سردارانو بالکل منل نه دی پکار.دوی خودالله دحدونونه تيرشوی دی.دتوحيد اتباع ئې هيره کړې ده.په زمکه کښې فساد خوروی.په نافرمانئ،ګناه اوفسق وفجورکښې په خپله هم لګيادی اونورخلق هم دې طرف ته رابلی.دحق موافقت او اتباع کوی داصلاح کوشش نه کوی.

قَالُوا إِنَّمَا أَنتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ۝ مَا أَنتَ إِلَّا

اوونيل ثموديانو | بيشکه چې ته | دجادو کړې شوؤ نه ئې | نه ئې ته | مګر

هغوئ ورته اوونيل چې په تا خو چرته غټ جادو شوې دې | ته خو زمونږ په شان يو

بَشَرٌ مِّثْلُنَا فَأْتِ بِآيَةٍ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ۝

يو انسان ئې | پشان زمونږه | پس راوړه | يوه نښه | که ئې ته | دصادقانونه |

انسان ئې | نو څه معجزه راوړه | که ته (په دې دعوی کښې) رينښتونی يئ | (صالح عليه السلام)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | هٰذِهٖ نَاقَةٌ | لَّهَا | شِرْبٌ | وَّلَكُمْ | شِرْبُ | يَوْمٍ | |
| اوونيل صالح | داوښه ده | دې لره | اوبه څکل دی | او ستاسو دپاره | اوبهٔ څکل دی | دورځې | |
| اوفرمائيل چې دايوه اوښه ده اچې يوه ورځ داوبوڅښلو وار د دې دی اوديوې تاکلې ورځې يو وار | | | | | | | |
| مَّعْلُوْمٍ | وَلَا تَمَسُّوْهَا | بِسُوْٓءٍ | فَيَاْخُذَكُمْ | عَذَابُ | يَوْمٍ | | |
| معلومې | او مهٔ رسوئ دې ته | څه ضرر | پس اوبه نيسی تاسو لره | عذاب | د ورځې | | |
| ستاسو دپاره مقرر دی اودې اوښې ته تکليف مه رسوئ اګنی په تاسو به د يوې لوئې ورځې عذاب راشی | | | | | | | |
| عَظِيْمٍ | فَعَقَرُوْهَا | فَاَصْبَحُوْا | نٰدِمِيْنَ | فَاَخَذَهُمْ | | | |
| لوئې | پس هغوئ دهغې خپې پريکړې | پس شول هغوئ | شرمنده | نو اونيول هغوئ | | | |
| خوهغوئ داوښې پښې پرې کړې انو بيا په خپلو کړو پښيمانه شول ابيا باندې عذاب | | | | | | | |
| الْعَذَابُ | اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيَةً | وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ | مُّؤْمِنِيْنَ | | | |
| عذاب | بيشکه په دې کښې | نښه ده | اونهٔ دې اکثر ددوئ | منونکی | | | |
| راغله ايقيناً په دې واقعه کښې د عبرت نښهٔ ده ا اوپه دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړی | | | | | | | |
| وَاِنَّ رَبَّكَ | لَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ | | | | |
| او بيشکه رب ستا | خامخا هغه | زبردست دې | رحم کونکې دې | | | | |
| اوبيشکه چې ستا رب زبردست او مهربان دې | | | | | | | |

قوله تعالی:- قَالُوْٓا اِنَّمَآ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ

دصالح ﷺ معجزه او دقوم ضد: ثمود يانوخپل نبی ته جواب ورکړوچه په تاخو چا جادوکړې دې. اګرچه يوه معنی داهم شوې ده چه ته دمخلوق نه يې. اوددې په دليل کښې دعربئ يوشعرهم پيش کولې شی. ليکن زياته واضحه معنی رومبئ ده. دې سره هغوی اوونيل. ته خو زمونږ په شان يوانسان يې. ناممکن ده چه په مونږکښې خوپه چا باندې وحی رانه شی. اوبه تا راشی. نورهيڅ نشته دا صرف بناوټ دې. يوښکاره چل دې جوړکړې دې. خالص دروغ اوصفا طوفان دې. ښه مونږ وايوکچرې ته واقعی رښتونې نبی يې. نو څه معجزه اوښايه. دغه وخت دهغوی ټول لوئې واړه جمع وو. اوټولوپه يوخائې معجزه اوغوښتله. پيغمبر تپوس اوکړو. چه تاسوڅه معجزه ليدل غواړئ؟ هغوی اوونيل. چه دا مخامخ لوئې ګټ دې. داد زمونږپه مخکښې اوچوی. اوددې نه دې يوه بلاربه اوښه ددې رنګ داسې داسې راوخی. نبیﷺ اوفرمائيل. ښه که زهٔ د رب نه دعا اوکړم اوهغه هم دا معجزه زماپه لاسونو تاسوته اوښائی. بياخوبه تاسوته زماد نبوت په منلوکښې څه عذرنه وی؟ ټولو مضبوطه وعده اوکړله. قول او اقرارئې اوکړو. چه مونږبه ټول ايمان راوړو. اوستا نبوت به منو. تاسو ډير زردامعجزه اوښايئ. هغوی هغه وخت مونځ شروع کړو. بيائې داللهﷻ نه دعا اوکړله. هغه وخت ګټ اوچودهٔ، اوهغه شان هغه اوښه دهغوی په مخکښې دهغې نه راووتله. څهٔ خلق خود اقرارمطابق مؤمنان شول. ليکن اکثر خلق بياهم کافران پاتې شول.

نبی صالح ﷺ اوفرمائيل. اوس واورئ! يوه ورځ به دا اوبه څکی او يوه ورځ به د اوبوڅکلو نمبر ستاسو مقرر وی. اوس به په تاسوکښې څوک هم دې ته تکليف نه رسوی. ګنی سخت عذاب به په تاسو راشی. يوې مودې پورې خوهغوی منع شول. اوښه په هغوی کښې اوسيدله. څرن به ئې کولو. اود خپل نمبرپه

ورځ به ئې اوبه څکلې.په دغه ورځ به هغوی دهغې په پیو ښهٔ خانونه مړول.لیکن څه موده پس دهغوی بدبختئ هغوی راګیر کړل.په هغوی کښې یو لوئې ملعون د اوښې د وژلو اراده اوکړله.اوټول ښاروالا دهغهٔ په طرف شول.پس دهغې خپې ئې پریکړلې اومره ئې کړله.چه ددې په نتیجه کښې هغوی سخت پښیمانه او ملامته شول.د الله عذاب هغوی ناڅاپه راګیر کړل.په هغوی زمکې اوخوزولې شوې.اویوې چغې سره ټول په ټوله هلاک کړې شول.زړونه ئې والوتل.اینې ئې ټکړې ټکړې شوې.او دڅه ځیزچه وهم اوګمان هم نه وو.هغه راغې.اول اوآخر ټول هلاک شول.اودټولې دنیا دپاره دا ویرونکې واقعه عبرت اوګرځیدله.دومره لویه نخښه ئې په خپلو سترګو اولیدله.خوبیاهم په هغوی کښې اکثروخلقوته ایمان نصیب نه شو.په دې کښې هیڅ شك نشته.چه الله غالب دې اوهغه مهربان دې.

| |
|---|
| كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ |
| ادروغژن اوګڼړل \| قوم دلوط |
| \| دلوط ﷺ قوم هم خپل پیغمبران دروغژن اوګڼړل |
| الْمُرْسَلِينَ ۝ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ لُوطٌ أَلَا تَتَّقُونَ ۝ |
| رسولان \| کله چې اووئیل \| هغوئ ته \| رور دهغوئ \| لوط علیه السلام \| آیا تاسو یریږئ نهٔ \| |
| کله چې ددوئ رور لوط ﷺ اووئیل اچې آیا تاسو (دالله ﷻ) نه نه یریږئ |
| إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ۝ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۝ |
| بیشکه زهٔ \| ستاسو دپاره \| رسول امانتدار یم \| پس اویریږئ دالله نه \| او خبره اومنئ زما \| |
| زه ستاسو په حقله یو امانت دار پیغمبر یم \|نوتاسو دالله نه اویریږئ \|اوزما تابعداری اوکړئ |
| وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ |
| اونهٔ غواړم زهٔ ستاسو نه \| په دې باندې\| اجر \| نه دې اجر زما \| مګر \| په رب |
| اوزهٔ ستاسو نه په دې (تبلیغ) څه بدله نه غواړم\| زما بدله خو درب العالمین په ذمه ده |
| الْعَالَمِينَ ۝ |
| العالمین باندې \| |

**قوله تعالی:- كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ الْمُرْسَلِينَ ۝**

**د لوط ﷺ قوم هم دخپل نبی نافرمان وو:-** الله تعالی دخپل بنده او رسول حضرت لوطﷺ قصه بیانوی. د دوی نوم لوط بن هاران بن آزروو.دا دابراهیم خلیل الله وراره وو.دوی لره الله تعالی دحضرت ابراهیمﷺ په ژوند کښې ډیر لوئې اُمت طرف ته لیږلی وو.داخلق سدوم اوددې خواوشا اوسیدل.آخرکار دوی هم دالله تعالی په عذابونوکښې راګیرشول.ټول هلاك شول.او ددوی دکلی په ځائې یو ډنډ (تالاب) دسخا ګنده او ترخو اوبو پاتې شو.دا تراوسه پورې د غوره ښارونوکښې مشهوردې.چه د بیتُ المقدس اوکرك اوشوبك په مینځ کښې دې.دې خلقوهم د رسول اللهﷺ تکذیب اوکړو. نبیﷺ هغوی ته دالله تعالی دنافرمانئ پریښودلو اودخپلې تابعدارئ کولوهدایت اوکړو. خپل رسول کیدل ئې ورته ښکاره کړل.هغوی ئې دالله تعالی دعذابونونه اویرول.دالله تعالی د خبرومنلو ئې ورته اوفرمائیل. اعلان ئې اوکړو چه زهٔ ستاسو پیسوټکوته محتاج نه یم.زه صرف دالله تعالی دپاره ستاسو خیرخواهی کوم. تاسو

د خپل ناکاره کارنه منع شئ: يعني د ښځونه بغير سړونه خپل حاجت پوره کولونه منع شئ. ليکن هغوی
د الله د رسول اونه منله. بلکه تکليفونه ئې ورته اورسول.

اَتَاْتُوْنَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦٥﴾ وَتَذَرُوْنَ مَا

| ايا ورځئ تاسو | نارينوته | دخلقو نه | او پريږدئ | هغه

ايا په ټوله دنيا کښې صرف تاسو (داسې خلق يئ) اچې دهلکانو سره لواطت کوئ ا او ستاسو

خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ ۭ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ

چې پيدا کړې دی | تاسو لره | رب ستاسو | دښځو ستاسو نه | بلکه يئ تاسو | قوم

رب چې ستاسو دپاره کومې ښځې پيدا کړې دي ا هغه تاسو پريږدئ ا تاسو خودحد نه تير شوی خلق ئې

عٰدُوْنَ ﴿١٦٦﴾ قَالُوْا لَىِٕنْ لَّمْ تَنْتَهِ يٰلُوْطُ لَتَكُوْنَنَّ

دحدنه اوړيدونکي | اووئيل هغوئ | که چرې | منع نۀ شوې تۀ | اے لوط | نوخامخا شې به تۀ |

هغوئ ورته اووئيل چې ائې لوط عليه السلام! که ته دخپلو خبرونه منع نه شوې انو ته به

مِنَ الْمُخْرَجِيْنَ ﴿١٦٧﴾ قَالَ اِنِّىْ لِعَمَلِكُمْ مِّنَ الْقَالِيْنَ ﴿١٦٨﴾

دايستلو شوؤ نه | اووئيل هغه | بيشکه زۀ | دې بدعمل ستاسو لره | دسخت بغض لرونکونه يم

دوطن نه بهر اوويستلې شې ا (لوط عليه السلام) اووئيل چې بيشکه زه ستاسو دعملونو نه نفرت کوم

رَبِّ نَجِّنِىْ وَاَهْلِىْ مِمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦٩﴾

اے ربه زما | نجات راکړه مالره | او اهل زما لره | دهغې (بدعملۍ) نه | چې دوئ ئې کوی |

ائې زما ربه ! ما او زما خاندان ددې خلقو د عملونو (دوبال) نه اوساتې

فَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٧٠﴾ اِلَّا عَجُوْزًا

پس نجات ورکړو مونږ هغه له | او اهل دهغه له | ټولو له | مګر | بوډئ ښځه |

نو مونږ دې اوددۀ ټول خاندان بچ کړو ا خو بس يو بوډئ چې روستو پاتې کيدونکو

فِى الْغٰبِرِيْنَ ﴿١٧١﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ﴿١٧٢﴾ وَاَمْطَرْنَا

په روستو پاتې کيدونکو کښې ده | بيا هلاک کړل مونږه | هغه نور | او رااوورول مونږه |

کښې پاتې شوه ا بيا مونږ ټول تباه کړه ا.................او په هغوئ مو يو خاص

عَلَيْهِمْ مَّطَرًا ۚ فَسَآءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿١٧٣﴾ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً ۭ

په هغوئ باند | باران | پس بدوؤ | باران ديرولو شوؤ | بيشکه په دې کښې | خامخا نښه ده

باران اوورولو اخومره خراب باران وو ا په هغه خلقو چې دعذاب نه ويرولې شوی وو ابيشکه په دې واقعه

وَمَا كَانَ اَكْثَرُهُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿١٧٤﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ

اونه دي | اکثر ددوئ | منونکي | او بيشکه | رب ستا | خامخا هغه | غالب دې |

کښې عبرت دې ا او په دوئ کښې زيات خلق ايمان نه راوړی اا وبيشکه چې ستا رب غالب مهربان دې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الرَّحِيْمُ | كَذَّبَ | أَصْحٰبُ الْئَيْكَةِ | الْمُرْسَلِيْنَ | إِذْ | قَالَ | لَهُمْ |
| مهربانه دي | دروغ اوگڼرل | ايکه والو | رسولان | کله چي | اووئيل | هغوئ ته |
| دبنړ خاوندانو خپل پيغمبران دروغژن اوگڼړل اڅه وخت چي شعيب ﷺ دوئ ته اووئيل | | | | | | |
| شُعَيْبٌ | أَلَا تَتَّقُوْنَ | إِنِّيْ | لَكُمْ | رَسُوْلٌ | أَمِيْنٌ | |
| شعيب ﷺ | ايا نۀ يريږئ تاسو | بيشکه زۀ | ستاسو دپاره | رسول يم | امانتدار | |
| ايا تاسو دالله ﷻ نه نه ويريږئ ازۀ ستاسو دپاره يو امانتدار پيغمبر يم | | | | | | |
| فَاتَّقُوا اللهَ | وَأَطِيْعُوْنِ | وَمَا أَسْئَلُكُمْ | عَلَيْهِ | مِنْ أَجْرٍ | | |
| پس اويريږئ دالله نه | او خبره اومنئ زما | اونۀ غواړم زۀ ستاسو نه | په دې باندې | څه اجر | | |
| نو تاسو دالله ﷻ نه اوويريږئ اوزما خبره اومنئ او زۀ تاسونه په دې کار هيڅ بدله نه غواړم | | | | | | |
| إِنْ أَجْرِيَ | إِلَّا | عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ | | | | |
| نۀ دې اجر زما | مګر | په رب العالمين باند دې | | | | |
| زمابدله خوبس صرف الله ﷻ سره ده | | | | | | |

**قوله تعالى:-أَتَأْتُوْنَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ**

**دلوط ﷺ دقوم ناكاره خصلت لواطت:**-لوط ﷺخپل قوم ددې خاص بدكارئ نه منع كړل چه تاسو سړوته شهوت سره مه راځئ.البته دخپلو حلال ښځونه خواهش پوره كوئ.كومې چه الله ﷻ ستاسو دپاره ښځې جوړې كړې دى.درب د مقررشوو حدونو ادب اواحترام كوئ.ددې جواب هغوى سره هم داوو.چه اې لوط! كه منع نه شوې نوموږ به تا جلاوطن كړو(د وطن نه به دې اوباسو) هغوى په خپل مېنځ كښې مشوره اوكړله.چه داپاك بازخلق خو جداكړئ.په دې كتلوسره لوطﷺدهغوى نه دبې زارئ اوجدا كيدو اعلان اوكړو.اووې فرمائيل.چه زۀ ستاسو ددې بدكار نه ناراض يم.زۀ دا نه خوښوم. زۀ الله تعالى ته براءت(بېزارى) ښكاره كوم.بيائې دالله تعالى نه هغوى دپاره خيرې اوكړې.او دخان او خپل كوروالو نجات ئې اوغوښتلو.الله تعالى ټولوته نجات وركړو.خودهغۀ ښځې دخپل قوم ملګرتيا اوكړله.اوهم دهغوى سره تباه شوه.لكه چه په سورۀ اعراف او سورۀ حجركښې په تفصيل سره بيان تيرشوې دې. لوطﷺ منونكى خلق خان سره روان كړل.اود الله تعالى دفرمان مطابق ددې كلي نه اووتلو.دالله حكم وو چه ستاسويه وتلوبه په هغوى باندې عذاب راځى.دغه وخت په شا دوى طرف ته ګورئ هم مه. بياپه هغوى ټولوباندې عذاب راغې.اوټول برباد شول.په هغوى باندې دآسمان نه دكاڼو باران اوشو.او د هغوى انجام بدشو.داهم عبرتناكه واقعه ده.په هغوى كښې هم اكثربې ايمانه وو.د رب په غلبه كښې او د هغۀ په رحم كښې هيڅ شك نشته.

**قوله تعالى:- كَذَّبَ أَصْحٰبُ الْئَيْكَةِ الْمُرْسَلِيْنَ**

**د شعيبﷺ خپل قوم ته وعظ.**-داخلق دمدين اوسيدونكى ووحضرت شعيبﷺ هم ددوى نه وو.دوى ته د هغوى رور صرف په دې وجه اونه وئيلې شو.چه په دې آيت كښې ددې خلقونسبت ايكه طرف ته شوې دې.چه دهغې به دې خلقوعبادت كولو.ايكه يوه ونه وه.هم داوجه ده چه لكه څنګه ئې نورو نبيانو ته د هغوى دأمتونو روراوفرمائيل.دوى ته دهغوى رور اونه وئيلې شو.ګنې داخلق هم ددوى دقوم وو.بعضې خلق چه هغوى په دې نكته پوهه نه شو.هغوى وائى چه داخلق ددوى دقوم نه وو.په دې وجه شعيبﷺ ته دهغوى روراونه وئيلې شو.داجدا قوم وو.حضرت شعيبﷺ خپل قوم طرف ته هم ليږلې شوې وو. او

دې خلقوطرف ته هم.بعضې وائي چه يودريم امت طرف ته هم ددوی بعثت شوې وو.حالانکه دحضرت عکرمه‌ؓ نه نقل دی چه هيڅ يونبي لره الله تعالی دوه ځل نه دې ليږلې.سوا دحضرت شعيب‌ؑ نه،چه يو ځل دوی مدين والو طرف ته اوليږلې شول.او ددوی د تکذيب په وجه دوی يو بڅری سره هلاك کړې شول.او دوباره دوی لره ايکه طرف ته اوليږلې شو.او ددوی دتکذيب په وجه دوی باندې د سوری والا ورځې عذاب راغې.اوهغوی برباد شول.ليکن دا ياد ساتل پکاردی چه ددې په راويانو کښې اسحاق بن بشرکاهلی دې.چه ضعيف دې.دقتاده‌ؓ قول دې.چه اصحاب رس اواصحاب ايکه د شعيب‌ؑ قوم دې.اويو بزرگ فرمائي چه اصحاب ايکه او مدين يودی(۱).والله اعلم.

په ابن عساکرکښې دی چه رسول الله‌ﷺ فرمائي چه قوم مدين اواصحاب ايکه دوه قومونه دی اودې دواړوامتونوطرف ته الله ﷻ خپل نبي حضرت شعيب‌ؑ ليږلې وو.ليکن داحديث غريب دې اود دې په مرفوع کيدوکښې کلام دې.ډيره ممکن ده چه دا موقوف وی.صحيح خبره داده چه دا دواړه يوامت دې.دواړه ځايونوکښې ددوی صفت جدا جدا بيان شوې دې.ډله يوه ده.ددې يوغټ دليل داهم دې. چه په دواړوقصوکښې د شعيب‌ؑ وعظ يودې.دواړوته ئې دناپ تول صحيح کولوحکم ورکړې دې.

| |
|---|
| اَوْفُوا الْكَيْلَ وَلَا تَكُوْنُوْا |
| پوره ورکوئ \| پيمانه \| اومه کيږئ تاسو |
| تاسو پيمانه پوره پوره ورکوئي \|اوخلقو ته |
| مِنَ الْمُخْسِرِيْنَ ۚ وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ ۚ وَلَا تَبْخَسُوا |
| دنقصان ورکونکونه \| اوتول کوئ \| په تله \| نيغه باندې\| اومه ورکوئ کم \| |
| نقصان مه ورکوئي\| او په سمه تله باندې تول کوئي\| او خلقو ته دهغوئ |
| النَّاسَ اَشْيَاۤءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ۚ وَاتَّقُوا |
| خلقو ته \| ځيزونه دهغوئ \|او مه ګرځئ تاسو \| په زمکه کښې \| فساد کونکې \| اواويريږئ \| |
| په ځيزونو کښې تاوانونه مه ورکوئي\| او په زمکه کښې فسادونه مه خوروني\| او دهغه |
| الَّذِيْ خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْاَوَّلِيْنَ ۚ |
| دهغه ذات نه \| چې پيدا ئې کړئ تاسو \| او خلق \| رومبنئ \| |
| ذات نه اوويريږئي \| چې تاسو او ستاسونه وړاندې مخلوقات ئې پيدا کړی دی \| |

قوله تعالى:- اَوْفُوا الْكَيْلَ

**په ناپ تول کښې دکمی ممانعت**:-شعيب‌ؑ خپل قوم ته دناپ تول صحيح کولوهدايت کوی.دهوکه کولواوپه ناپ تول کښې دکمی کولونه ئې منع کوی.فرمائي چه کله چاته څه ځيز ناپ کوئ. نو پيمانه ډکه ورکوئ.دهغهٔ دحق نه مه کموئ.دغه شان کله چه دبل نه اخلئ نودزيات اخستلو کوشش او تدبير مه کوئ.داولې چه داخستلوپه وخت پوره اخلئ اود ورکولوپه وخت کم ورکوئ؟اخستل ورکول دواړه صفا اوپوره ساتئ، تله ښه ساتئ،چه په دې کښې تول صحيح راځي. ناپ هم پوره ساتئ،په تول کښې عدل(انصاف)کوئ.دهوکه مه کوئ.کم مه تلئ،چاته دهغهٔ ځيزکم مه ورکوئ.دچا لاره مه وهئ.غلا غلتی،لوټ مار،فساد کول.لارې شوکولو نه ځان ساتئ.خلق ويرولو او دهمکيانې ورکولو سره دهغوی نه مال مه لوټ کوئ.دهغې الله دعذابونونه اويريږئ چه هغهٔ تاسو اوټول مخکښې خلق پيدا کړی دی.

(۱) الطبری : ۱۹/۳۹۰.

چه هغه ستاسو او ستاسو دمشرانو رب دی.هم دا لفظ په آیت ﴿وَلَقَدْ اَضَلَّ مِنْكُمْ جِبِلًّا كَثِيْرًا﴾ کښې هم په دې معنی کښې دی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّمَآ | قَالُوْٓا | | | | | |
| بیشکه | اوونیل هغوئ | | | | | |
| هغوئ ورته | | | | | | |
| مِّثْلُنَا | بَشَرٌ | اِلَّا | وَمَآ اَنْتَ | مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ | اَنْتَ | |
| په شان زمونږه | انسان ئې | مګر | اونهٔ ئې تهٔ | دسحر کړي شوو نه ئې | چې تهٔ | |
| اوونیل چې په تاخو جوړې چا جادو کړې دی او ته خو بس زمونږ په شان انسان یئ | | | | | | |
| عَلَيْنَا | فَاَسْقِطْ | لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ | وَاِنْ نَّظُنُّكَ | | | |
| په مونږ باندې | پس راوغورزوه | ددروغژنانو نه | او بیشکه مونږ ګمان کوو په تا باندې | | | |
| اوزمونږ داخیال دې چې ته درغژن یئ انو که ته رېښتونې یئ انو په مونږ باندې د | | | | | | |
| رَبِّيْٓ | قَالَ | مِنَ الصّٰدِقِيْنَ | اِنْ كُنْتَ | مِّنَ السَّمَآءِ | كِسَفًا | |
| چې رب زما | اوونیل هغه | دربنتینو خلقو نه | که ئې تهٔ | داسمان نه | یو ټوټه | |
| اسمان نه یوه ټوټه راوغورزوه \| شعیب ﷺ اوونیل چې زما رب ته ستاسو عملو نه | | | | | | |
| فَاَخَذَهُمْ | فَكَذَّبُوْهُ | تَعْمَلُوْنَ | بِمَا | اَعْلَمُ | | |
| نو اونیول هغوئ لره | پس هغوئ دروغ اوګڼړو هغه لره | چې تاسو ئې کوئ | په هغه څه | ښهٔ پوهیږی | | |
| ښه معلوم دی \| خو هغوئ شعیب ﷺ دروغژن اوګڼړلو \| نو د سیورې د ورځې | | | | | | |
| اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ | عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ | اِنَّهٗ كَانَ | الظُّلَّةِ | يَوْمِ | عَذَابُ | |
| بیشکه په دې کښې | عذاب دورځې لوئې | بیشکه چې دا وو | دسورې | دورځې | عذاب | |
| عذاب پرې راغلو \| بیشکه چې دغه د عذاب ډیره سخته ورځ وه \| بیشکه په دې واقعه کښې | | | | | | |
| لَهُوَ | رَبَّكَ | وَاِنَّ | مُّؤْمِنِيْنَ | اَكْثَرُهُمْ | وَمَا كَانَ | لَاٰيَةً |
| خامخا هغه | رب ستا | او بیشکه | منونکي | اکثر دهغوئ | اونهٔ وو | خامخا نښنه ده |
| هم (خلقو د پاره) نښه ده \| مګر په دوئ کښې زیات خلق ایمان نه راوړی \| او بیشکه هم | | | | | | |
| الرَّحِيْمُ | الْعَزِيْزُ | | | | | |
| رحیم دی | غالب دی | | | | | |
| ستا رب غالب او مهربان دی | | | | | | |

**قوله تعالی:- قَالُوْٓا اِنَّمَآ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِيْنَ**

**دشعیب ﷺ قوم هم دثمودیانو پشان جواب خپل نبی ته ورکړی:**-ثمودیانوچه کوم جواب خپل نبی ته ورکړې وو.هم هغه جواب دې خلقو هم خپل رسول ته ورکړو.چه په تا باندې چا جادوکړې دی.ستا عقل په ځائې نه دی.ته خوزمونږپه شان انسان یې.اوزمونږ خویقین دې چه ته دروغژن سړې یې.الله تعالی ته نه یې رالیږلې.که ته په خپله دعوه کښې رښتونې یې.نوپه مونږباندې دآسمان نه یوه ټکړه راوغورزوه.

اسمانی عذاب په مونږ باندې راوله.لکه څنګه چه قریشو رسول اللهﷺ ته ونیلي وو.چه مونږ خویه تاایمان نه راوړو.چه ترڅو پورې ته د عربوپه دې شکلنه زمکه کښې سمندر اونه بهیوې.تردې پورې نې اوونیل چه یاخوته په مونږ باندې دآسمان نه څه ټکړه راوغورزوه.لکه چه ستا خیال دې. یاته الله تعالی یا فرشتې په ښکاره راوله.په بل آیت کښې دی چه هغوی اوونیل اې الله! که دا ستا دطرفه دې اوحق دې نوته دآسمان نه کاڼې راو وروه.دغه شان دې جاهل کافرانو اوونیل.چه ته په مونږ باندې دآسمان ټکړه راوغورزوه.پیغمبرﷺ جواب ورکړوچه الله تعالی ته ستاسو عملونه ښه معلوم دی.چه دڅه تاسو لایق یئ هغه به پخپله اوکړی.که تاسودهغهٔ په نزددآسمانی عذاب قابل یئ:نوهغه به بغیرتاخیرنه په تاسو باندې آسمانی عذاب راو وروی.الله تعالی ظالم نه دې.چه بې ګناه خلقوته سزاورکړی.آخرچه دوی کوم قسم عذاب غوښتلو.هغه شان عذاب په دوی باندې نازل شو.هغوی ته سخته ګرمی محسوس شوه.اووهٔ ورځې پورې ګویا زمکه خوټ کیدله.هیڅ یوخائې کښې،په هیڅ یوسوری کښې یخوالې یا آرام نه ملاویدلو تنګ شول،ناقلاره شول.اووهٔ ورځې پس هغوی اولیدل چه یوه توره وریځ هغوی طرف ته راروانه ده.وریځ راغله اودهغوی په سرونو باندې خوره شوه.دوی ټول د ګرمئ او دهوپ نه تنګ شوی وو. دهغې لاندې کیناستل.کله چه ټول په ټوله دهغې سوری ته اورسیدل.نودهغه وریځې نه اور وریدل شروع شو.ورسرهٔزمکې هم په زور زورسره جهټکې ورکولې.اویو داسې زورسره یوآواز راغې.چه په هغې سره دهغوی زړونه اوچودل. روحونهٔ نې اووتل.او ټول په ټوله په یوآن کښې تباه او برباد شول.ددغه ورځې د سوری والا سخت عذاب په هغوی کښې یوکس هم پرې نخودلو.

**په قوم شعیب درې قسمه عذابونه:-** په سورهٔ اعراف کښې خوفرمائیلی شوی دی.چه یوې زلزلې سره دوی ټول هلاك کړې شول.په سورهٔ هودکښې بیان شوی دی.چه ددوی دتباهئ سبب یوه خطرناکه زرهٔ چاودونکې چغه وه.او دلته بیان اوشوچه هغوی لره د سوری والا وریځې عذاب راګیرکړل.نودرې وارهٔ خایونوکښې د دریو وارو عذابونویه یویو ذکرکولوسره ددې مقام دعبارت مناسبت په وجه شوی دی.په سورهٔ اعراف کښې ددوی ددې ګنډګئ ذکردې چه دوی حضرت شعیبﷺ ته دهمکیانې ورکړې وې.چه که ته زمونږدین کښې رانغلې.نومونږبه تااوستاملګری دښارنه اوباسو.چونکه هلته دنبی د زړهٔ خوزولو ذکروو.په دې وجه عذاب هم دهغوی د بدنونواو زړهٔ خوزولو یعنی د زلزلې اوجهټکې ذکروو.په سورهٔ هودکښې ذکردی چه هغوی خپل نبی ته دټوقو په طور ونیلی وو.چه ته خودېر صبرناك او غوره سړې یې.مطلب داوو.چه ډیر بکواسی او ناکاره سړې یې. نو هلته عذاب کښې د چغې اوسخت آوازبیان وو.دلته چونکه ددوی آرزود آسمان د ټکړې غورزیدلو وو .نو د عذاب ذکرهم دڅټ په شان وریځې ټکړې سره اوشو.فسبحانه مااعظم شانه.

**د قوم شعیب د عذاب کیفیت:-** دحضرت عبدالله بن عمرﷺ بیان دې چه اووهٔ ورځو پورې داسې ګرمی وه چه الله دې مونږیه امان اوحفاظت کښې اوساتی.د یخوالی نوم نه وو.سخت تنګ شول.ددې نه پس یوه وریځ راغله راخوره شوه .د هغې سوری ته یوسړې اورسیدلو.اوهلته نې راحت اویخوالې بیاموندلو.هغهٔ نورخلق هم راوغوښتل .کله چه ټول جمع شول.نو وریځه اوچودله.او دهغې نه اور اووریدلو.داهم نقل دی.چه کومه وریځه چه د چت په طوروه.دهغوی جمع کیدوسره لرې شوه اود نمرنه په هغوی باندې اور اووریدلو.چه هغوی ټول نې اوسوزول.محمدبن کعبﷺ قرظی فرمائی چه په اهل مدین باندې درې واړه عذابونه راغلل.په ښارکښې زلزله راغله.چه دهغې نه اویریدل اود ښار دحدونونه بهر راغلل .بهر جمع کیدوسره ویره، پریشانی او تکلیف شروع شو.نودهغه ځائې نه اوتښتیدل.لیکن ښارته تللونه اویریدل.هلته نې اولیدل چه دوریځې یوه ټکړه یوځائې ده.یوکس دهغې لاندې لاړلو. او د هغې یخوالې نې محسوس کړو .نو ټولوته نې آواز ورکړو چه دلته راشئ: ددې په شان یخوالې او آرام خو ما کله

ليدلې هم نه دي.په دې اوريدوسره ټول دهغې لاندې جمع شول.چه ناڅاپه د يوې چغې اواز راغې.چه په هغې سره زړونه اوچودل.اوټول په ټوله مړه شول.دحضرت ابن عباس رضی الله عنه بيان دي.چه سخت ګرزارې او ګرمي شروع شوه .چه هغې سره ساګانې بندې شوې.او بې قلارى ډيره زياته شوه.اوبريدل بنارئي پريښودلو،په ميدان کښې جمع شول.دلته وريخ راغله.چه دهغې لاندې يخوالي او راحت حاصلولودپاره ټول جمع شول.هلته اور اووريدلو.اوټول اوسوزيدل.دا وه دڅټ والا ډيرې سختې وريځې عذاب،چه هغوى ټول ئې هلاک کړل(١).يقيناً دا واقعه سراسر عبرت اودالله دقدرت يوه زبردسته نخښنه ده.په هغوى کښې اکثريې ايمانه وو.الله تعالى دخپلو بدو بندګانونه په بدلې اخستلوکښې غالب دي.څوک هغهٔ لره نه شي مغلوب کولې .هغه په خپلونيکوبندګانو باندې مهربان دي.هغوى بچ کوى.

وَإِنَّهُ لَتَنزِيلُ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ ﴿١٩٢﴾
| او بيشکه دا قران |خامخا نازل کړې شوې پيغام دې | درب العالمين
| اودا قران پاک درب العالمين راليږلي پيغام دي

نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ ﴿١٩٣﴾ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ
نازل کړې دي | دا قران | روح امانتدار (جبريل) | په زړهٔ ستا باندې| دپاره ددې چې شې ته |
دا روح الامين(جبريل) راوړې نازل کړې دي |ستا (په زړهٔ ئې نازل کړې دي) چې ته (ددې

مِنَ الْمُنذِرِينَ ﴿١٩٤﴾ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ﴿١٩٥﴾ وَإِنَّهُ
دخبر دارونکونه | په ژبه | عربئ ښکاره (صفا) سره | او بيشکه دا قران |
په ذريعه)خلق دالله ﷻ نه اوبروې |داپه واضحه عربئ ژبه کښې دي |اوددې ذکردپخوانو

لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ ﴿١٩٦﴾ أَوَلَمْ يَكُن لَّهُمْ آيَةً أَن يَعْلَمَهُ
خامخا په کتابونو ړومبنو کښې دي|ايا نه ده |دپاره ددوئ | نښه | (داخبره) چې پوهيږى په دې قران
امتونو په کتابونو کښې راغلې دي |ايا دې خلقودپاره داخبره کافي دليل نه دي | چې (ددې کتاب

عُلَمَٰٓؤُا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿١٩٧﴾ وَلَوْ نَزَّلْنَٰهُ عَلَىٰ بَعْضِ الْأَعْجَمِينَ ﴿١٩٨﴾
عالمان | دبنى اسرائيلو او که نازل کړې وې مونږه دا | په يو باندې دعجميانونه |
حقيقت) دبنى اسرائيلو عالمانو ته معلوم دي |او که دا کتاب مونږ په چا عجمي باندې نازل کړې وې

فَقَرَأَهُ عَلَيْهِم مَّا كَانُوا بِهِ مُؤْمِنِينَ ﴿١٩٩﴾
پس لوستلې وې هغه دا | په دوئ باندې| نهٔ به وو دوئ | په هغې باندې | ايمان راوړونکى |
اوبيا هغه په دوئ باندې لوستلې هم وې |نو دوئ به منلې نه وو |

**قوله تعالى:- وَإِنَّهُ لَتَنزِيلُ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ ﴿١٩٢﴾**

**درسول الله ﷺ زړه دقران مسکن دي.** دسورة په شروع کښې دقرآن کريم ذکرراغلې وو.هغه ذکربيان تفصيل سره بيانيږى.چه دا کتاب قرآن کريم الله تعالى په خپل بنده او نبى حضرت محمد مصطفى ﷺ باندې نازل کړې دي.د روح الامين نه مراد حضرت جبرئيل عليه السلام دي.(٢)چه دهغهٔ په واسطې سره وحى امام

١) الطبرى : ١٩/٣٩٤.
٢) الطبرى : ١٩/٣٩٦.

الانبیاء ﷺ باندې نازله شوې ده.لکه چه فرمان دې ((قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ))يعنى دا قرآن دالله تعالى په حکم حضرت جبرئیل ﷺ ستاپه زړه باندې نازل کړې دې.دا قرآن د تیرشوو تولو الهامی کتابونو ربنتیا کونکې دې.دا فرشته زمونږپه نزد داسې عزت والاده.چه ددې دشمن زمونږ دشمن دې.

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی.چه چاته روح الامین اوونیلې شی هغهٔ لره زمکه نه شي خوړلې.دې بزرګ مرتبې والا فرشتې چه دا دفرشتو سرداردہ.ستاپه زړهٔ باندې دا پاك او غوره کلام الله نازل کړې دې.چه دادهرقسمه خیرنوالی نه،کمی اوزیاتی نه،دنقصان او کوږوالی نه پاك دې.چه ته دالله تعالی مخالفین، ګنهګاران دالله تعالی دسزانه د بچ کولو رهبری اوکړې.اوتابعداروخلقوته دالله تعالی د مغفرت او رضا مندئ زیرې ورکړې.داپه واضح فصیحه عربئ ژبه کښې دې.چه هرسړې پوهه شی.اولوستلې ئې شی. چاته عذرپاتې نه شی.اوپه هرپوباندې قرآن کریم دالله تعالی حجت جوړشی.یوځل نبی کریم ﷺ د صحابو ﷺ په مخکښې دېرفصاحت سره د وریځې صفتونه بیان کړل.چه ددې په اوریدو سره صحابو ﷺ اووئیل.چه اې دالله رسوله! تاسوخود کمال درجې فصیح اوبلیغ ژبه وایئ.نبی ﷺ اوفرمائیل.زما ژبه به داسې پاکیزه ولې نه وی.قرآن هم زماپه ژبه کښې نازل شوې دې.(( بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِيْنٍ)) امام سفیان ثوری رحمه الله فرمائی.وحی په عربئ کښې نازل شوې ده.دابله خبره ده چه هرنبی دخپل قوم دپاره دهغوی په ژبه کښې ترجمه اوکړله.دقیامت په ورځ به سریانی ژبه وی.البته دجنتیانو ژبه به عربی وی.(ابن حاتم)

**قوله تعالى:- اَوَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ اٰيَةً**

**د قرآن دحقانیت پوځ ثبوت او دعیسی ﷺ خطبه:**-فرمائی چه دالله تعالی په تیرو شووکتابونوکښې هم ددې پاك اود الله دآخری کلام پیش ګوئی اوددې تصدیق اوصفت موجود دې.مخکښې نبیانوهم ددې زیرې ورکړې دې.تردې چه هغه تولونبیانو آخری نبی چه دهغوی نه پس رسول الله ﷺ پورې بل څوك نبی نه وو.یعنی حضرت عیسی ﷺ بنی اسرائیل راجمع کړل خطبه ئې ورکړله.په هغې کښې فرمائی. انې بنی اسرائیلو! زهٔ ستاسوطرف ته دالله تعالی رالیږلې شوې رسول یم.چه دمخکینو کتابونو ربنتیا ګڼړلو سره سره دراتلونکی رسول حضرت محمد ﷺ زیرې هم تاسوته اوروم. زبور دحضرت داؤد ﷺ دکتاب نوم دې.دلته زُبُرلفظ دکتابونوپه معنی کښې دې.لکه چه فرمان دې ﴿وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوْهُ فِي الزُّبُرِ﴾کوم څه چه دوی کوې تول په کتابونوکښې لیکلې شوی دی.بیا فرمائی.که دوی پوهه شی ضد اوتعصب اونکړی.نود قرآن په حقانیت باندې دا دلیل څه کم دې.چه پخپله د بنی اسرائیلو عالمان دامنی.په دوی کښې چه کوم حق ویونکی اوتعصب نه کونکی دی.هغوی د توراة هغه آیاتونه خلقوته ښکاره کوی.په کوم کښې چه دنبی کریم ﷺ نزول قرآن ذکر اود رسول الله ﷺ دحقانیت خبردې.حضرت عبدالله بن سلام ﷺ،حضرت سلمان فارسی ﷺ اوددوی پشان حق ګوحضرات ددنیاپه مخکښې دتوراة اوانجیل هغه آیاتونه پیش کړل. کوم چه د رسول الله ﷺ شان ښکاره کونکی وو.ددې نه پس والا آیت مطلب دادې.چه که دا فصیح اوبلیغ جامع مانع حق کلام مونږپه یوعجمی باندې نازل کړې وی. بیاخوهیڅ شك نه شوکیدلې.چه دا زمونږکلام دې.خود قریش مشرکان په خپل کُفر اوخپله سرکشئ کښې دومره زیات شوی وو.چه دغه وخت هم هغوی ایمان نه راوړلو.لکه چه فرمان دې.چه که دآسمان دروازه هم هغوی دپاره کهلاؤ شوې وې،او دوی په خپله ختلې وې،بیابه ئې هم دا ونیل چه مونږباندې نشه څکولې شوې ده.زمونږپه سترګو باندې پرده اچولې شوې ده.په بل آیت کښې دی چه که دوی ته فرشتې راغلې وې.او مړو خبرې کړې وې،بیابه هم دوی ته ایمان نه وې نصیب شوې.په دوی باندې دعذاب خبره ثابت شوه.دهدایت لاره ددوئ نه بنده کړې شوې ده .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَذٰلِكَ سَلَكْنٰهُ | فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | بِهٖ | |
| دارنگې ننستلې دي مونږه دا ذکر | په زړونو دمجرمانو کښې | نه راوړي ايمان دوئ | په دې (قرآن) | |
| دغه شان مونږ (داعناد او انکار) دمجرمانو په زړونو کښې اچولې دي ادوئ په دې ايمان نه راوړي | ترد دې چې | | | |
| حَتّٰى | يَرَوُا الْعَذَابَ | الْاَلِيْمَ ۝ | فَيَأْتِيَهُمْ | بَغْتَةً |
| تر هغې پورې | چې اووينې دوئ عذاب | دردناك | نو رابه شي دغه عذاب دوئ ته | ناساپه |
| دردناک عذاب په خپلو سترګو اونه وينې اخو (هغه عذاب به پرې) داسې ناګهانه راشي | | | | |
| وَّهُمْ | لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ | فَيَقُوْلُوْا | هَلْ نَحْنُ | مُنْظَرُوْنَ ۝ |
| او حال دا چې دوئ | به نه پوهيږي | نو وائي به دوئ | آيا مونږ ته | مهلت ملاويدې شي نو |
| چې دوئ بهٔ ترې خبر هم نه وي | نو په هغه وخت کښې به اووائي اچې آيا مونږ له بهٔ مهلت راکړې | | | |
| اَفَبِعَذَابِنَا | يَسْتَعْجِلُوْنَ ۝ | اَفَرَءَيْتَ | اِنْ مَّتَّعْنٰهُمْ | |
| آيا پس عذاب زمونږ ته | تلوار کوي دوئ | آيا نو ستا څه خيال دې | که نفع ورکړو مونږ دوئ ته | |
| شي؟ انو آيا دوئ زمونږ عذاب زر غواړي اورته اووايه چې که مونږ يو څو کاله دوئ | | | | |
| سِنِيْنَ ۝ | ثُمَّ جَآءَهُمْ | مَّا | كَانُوْا | يُوْعَدُوْنَ ۝ |
| ډير کلونه | بيا راشي دوئ ته | هغه عذاب | چې دې دوئ | چې يرولې کيږي دهغې نه |
| په عيش عشرت کښې اوساتو | اوبيا پرې هغه عذاب راشي | دکوم چې ورسره وعدې | | |
| مَآ اَغْنٰى | عَنْهُمْ | مَّا كَانُوْا | يُمَتَّعُوْنَ ۝ | |
| نو به کار به رانهٔ شي | ددوئ | هغه څيزونه چې وو دوئ | چې فائده به ورکولې شوه دوئ ته په هغې سره | |
| شوي دي | نو ددوئ هغه عيش عشرت به څه کار ورکړي ؟ ....او مونږ چې کوم کلي | | | |
| وَمَآ اَهْلَكْنَا | مِنْ قَرْيَةٍ | اِلَّا | لَهَا | مُنْذِرُوْنَ ۝ | ذِكْرٰى ۛ |
| اونه دي هلاك کړي مونږه | دهيڅ ښار نه | مګر | هغې لره به وو | يرونکي | نصيحت |
| تباه کړي دي | نو هغوي ټولو ته د نصيحت دپاره يرونکي (پيغمبران) راغلي وو | او مونږ | | |
| وَمَا كُنَّا | ظٰلِمِيْنَ ۝ | | | |
| اونهٔ وو مونږه | ظالمان | | | |
| په چا ظلم نه کوؤ | | | | |

قوله تعالىٰ:- كَذٰلِكَ سَلَكْنٰهُ فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ۝

**عذاب دحجت تماميدونه پس راځي**:تکذيب،کفر،انکاراونه منل ددې مجرمانوپه زړهٔ کښې کينولې شوي وو.دوی چه ترڅو پورې عذاب په خپلو سترګو اونه وينې.ايمان به رانهٔ وړي.داوخت که ايمان راوړي نوهم بالکل فضول به وي.لعنت به پرې شوې وي، بدې به ورته ملاوشوی وي.نه به افسوس په کارراشي،نه به معذرت نفع ورکړي.دالله ﷻ عذاب به راځي.او ناڅاپه يکدم به بې خبرئ کښې راځي. دغه وخت ددوی آرزوګانې چه که لږشان مهلت هم ملاوشي نونيکان به جوړشو.هيڅ فائده به نه

ورکوی.یواځې په دوی موقوف نه ده بلکه هرظالم، فاجر،فاسق، کافر،بدکارچه عذاب اووینی نوسم شی.توبه توبه به کوی خوهیڅ فائده به نه ورکوی. فرعون ته اوګورئ! حضرت موسیٰ هغهٔ دپاره خیری اوکړلې چه قبولې شوې.چه عذابونه ئې اولیدل،په ډوبیدوشو،نووې ونیل چه اوس زهٔ مسلما نیږم.لیکن جواب ملاوشو.چه دا ایمان فضول دې.دغه شان په نوروآیاتونوکښې دی.چه زمونږ عذابونه ئې اولیدل نودایمان اقرارئې اوکړو.

**قوله تعالی:- أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ**

بیا ددوی یوه بله بدبختی بیانیږی.چه دوی به خپلو نبیانوته ونیل.که رښتونی یې نوعذاب راولې. اګر چه مونږدوی ته مهلت ورکړو،اوخه ورخو پورې، څه مودې پورې دوی دعذابونونه بچ اوساتو.بیا دوی ته زمونږ مقررعذاب راشی.نوددوی حال،ددوی نعمتونه، ددوی مالداری غرض هیڅ څیز دوی ته ذره برابرهم فائده نه شی ورکولې.دغه وخت خوبه دا معلومیږی چه شاید یوسحر یا یومابنام په دنیاکښې اوسیدلی یو.لکه چه په بل آیت کښې دی. ﴿يَوَدُّ أَحَدُهُمْ﴾ په دوی کښې د یویوکس خواهش دې چه زرزرکاله ژوندې وی.لیکن دومره عمرهم دالله دعذاب نه نشی لرې کولې.دلته ئې هم اوفرمائیل.چه د دوی اسباب به ددوی هیڅ په کارنه راځی.دده د پرمخې غورزیدوپه وخت به دده ټول طاقتونه او اسباب دغه شان پروت په پروت پاتې شی.لکه چه صحیح حدیث کښې دی.چه کافربه دقیامت په ورځ راوستلې شی.بیابه ورته په اورکښې یوه غوپه ورکړی اوتپوس به ترې اوکړې شی.چه تاکله راحت هم موندلې دې؟ نوهغه به اووائې.چه په الله قسم! ماکله هم څه راحت نه دې لیدلې.اویو سړې به راوستلې شی.چه هغهٔ به ټول عمر یقیناً چه هیڅ راحت نه وی موندلې.هغهٔ ته به دجنت هوا ګهلاوکړې شی.او سوال به ترې اوشی.چه تاپه ټول عمر کښې کله څه بدی لیدلې ده؟ نوهغه به اووائی.اې الله ستاپه پاک ذات قسم! ماکله هم څه تکلیف نه دې لیدلې.([1])حضرت عمر به عام طوردا شعر ونیلو.چه کله ته خپل مراد ته اورسیدلې.نوګویا تادڅه تکلیف نوم هم نه دې اوریدلې.

**قوله تعالی:- وَمَا أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ**

**د الله ﷻ دعدل بیان:-** الله ﷻ ددې نه پس دخپل عدل خبر ورکوی.چه هغه کله هم دحُجت پوره کیدونه مخکښې یوأمت نه دې ختم کړې.رسولان لیږی،کتابونه نازلوی،خبرونه ورکوی،هوښیار کوی،بیا په نه منونکوباندې لوئې لوئې مصیبتونه راځی.پس وې فرمائیل چه داسې کله هم نه دی شوی.چه دنبیانو رالیږلونه مخکښې مونږپه یوأمت باندې عذاب رالیږلې وی.ویرونکی رالیږی،نصیحت بیانوی، عُذرونه لرې کوی.بیاپه نه منونکوباندې عذاب راځی. لکه چه وې فرمائیل.ستا رب هیڅ یوکلې نه هلاکوی.چه ترڅو پورې ددغه کلوپه غټ کلی کښې څوک رسول اونه لیږی.چه هغه هغوی ته زمونږ آیاتونه واوروی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا تَنَزَّلَتْ | بِهِ | الشَّيَاطِينُ | وَمَا يَنبَغِي | |
| اونهٔ دې نازل کړې | دا قرآن | شیطانانو | اونهٔ ښائی (دا راوړل) | |
| اوداقرآن پاک شیطانانو نه دې راوړې | اودا دهغوئ دپاره مناسب هم نه | | | |
| لَهُمْ | وَمَا يَسْتَطِيعُونَ | إِنَّهُمْ | عَنِ السَّمْعِ | لَمَعْزُولُونَ |
| هغوئ لره | اونهٔ طاقت لری هغوئ | بیشکه هغوئ | داوریدلو ددې نه | لرې ساتلې شوی دی |
| دی | اونه دا دهغوئ دوس کار دې | هغوئ ددې (پاک کلام دا وریدلو (قدر نه) هم محروم دی | | |

[1] صحیح مسلم کتاب المنافقین باب صبغ انعم اهل الدنیا فی النار وصبغ اشدهم بوسا فی الجنة: ۲۸۰۷.

قوله تعالى:- وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيٰطِيْنُ
قرآن نوردهدايت دي -داعزت والا كتاب چه دې سره خواكښې هم باطل نه شي پاتې كيدې چه دا د حكيم اوحميد الله دطرفه نازل شوې دې.چه دې لره روح الامين راوړلې دې.چه هغه قوت اوطاقت والا دې.دې لره شيطانانو نه دې راوړلې.بيانې ددوى په نه راوړلوباندې درې وجهې بيان كړې دى. يوه خو دا چه دوى ددې لائق هم نه دى.ددوى كارمخلوق بې لارې كول دى.په سمه لار راوستل نه دى. امر بالمعروف اونهى عن المنكر چه داددې كتاب شان دې.دهغوى سراسر خلاف دې.دا نوردې،دا هدايت دې،دا برهان دې،او شيطانان ددې دريو واړوځيزونونه نفرت كوى .دوى خو ظلمت غواړى ،د گمراهئ مشران دى،جهالت باندې قربان دى.پس په دې كتاب اوهغوى كښې خوتباين اواختلاف دې. چرته هغوى اوچرته دا.بله وجه داده چه څنگه هغوى ددې اهل نه دى.په هغوى كښې ددې داوچتولو او راوړلو طاقت هم نشته.دا خوهغه عزت او مرتبې والا كلام دې.چه كه يو لونې نه لونې غرباندې نازل شى نوهغه به ټكړې ټكړې كړى.بيانې دريمه وجه بيان كړله.چه هغوى خوددې د نزول په وخت لرې كړې شوى وو.هغوى ته خو اوريدل هم ملاونه شول.په ټول آسمان باندې سخته پهره اوڅوكيدارى وه. دوى اوريدو دپاره ختلى وو.نوبه دوى باندې اور ورولې شو.ددې يوحرف اوريدل هم ددوى دطاقت نه بهر وو چه دالله تعالى كلام په محفوظ طريقه باندې دهغهٔ نبى ﷺ ته اورسيږى.او دهغهٔ په واسطې سره دالله مخلوق ته اورسيږى لكه چه په سورة جن كښې پخپله دجناتومقوله بيان شوې ده چه مونږآسمان او لټولونوداموسختې پهرې اوڅوكيدارئ نه ډك بياموندلو.اوخائې په خائې موشعلې مقرراوموندلې مخكښې خوبه مونږ كيناستلو،بوهنيمه خبره مواوريدله.ليكن اوس خو غوږ ايخودلوسره شعله باندې لگو اوپه سوزولوسره مو ايرې كوى.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَا تَدْعُ | مَعَ اللّٰهِ | اِلٰهًا اٰخَرَ | فَتَكُوْنَ | مِنَ الْمُعَذَّبِيْنَ | وَاَنْذِرْ | |
| پس مهٔ رابله تهٔ | دالله سره | معبود بل | پس شې به تهٔ | دسزا كړې شوى نه | اواويروه | |
| نو ته الله ﷻ سره دبل معبود بلنه مه كوه | گنى تاته به عذاب دركړې شى | او نزدې | | | | |
| عَشِيْرَتَكَ | الْاَقْرَبِيْنَ | وَاخْفِضْ | جَنَاحَكَ | لِمَنِ | اتَّبَعَكَ | |
| خپلوان ستا | نزدې | او ښكته كړه | وزر خپل | هغه چاته | چې پيروى ني كړې ده | |
| خپلوان دې (دعذاب نه) اوويروه | اوهغه مومنانو ته خپل اړخ ښكته كړه | كوم چې | | | | |
| مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ | فَاِنْ عَصَوْكَ | فَقُلْ | اِنِّيْ | | | |
| دمومنانو نه | پس كه چرې هغوى نافرمانى اوكړه ستا | نو اووايه | بيشكه زهٔ | | | |
| ستا په قدم پسې روان دى | اوكه داخلق ستا خبره اونه منى | نو ورته اووايه چې زهٔ | | | | |
| بَرِيْٓءٌ | مِّمَّا | تَعْمَلُوْنَ | وَتَوَكَّلْ | عَلَى الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ | | |
| ذمه وار نهٔ يم | دهغې | چې تاسو ئې كوئ | اوبروسه كوه | په الله غالب رحيم باندې | | |
| ستاسو دكارونوبه بې زاره يم | او په قادر اومهربان الله ﷻ باندې بهروسه كوه | | | | | |
| الَّذِيْ | يَرٰىكَ | حِيْنَ | تَقُوْمُ | وَتَقَلُّبَكَ | | |
| هغه الله | چې وينى تا | په هغه وخت كښې | چې پاسې تهٔ (تهجدته) | او وينى گرځيدل ستا | | |
| هغه تاگورى څهٔ وخت چې ته (مونځ دپاره) اودريږې | او په مونځ گزارو كښې ستا ښكته | | | | | |

| فِي السّٰجِدِيْنَ﴿۲۱۹﴾ | اِنَّهٗ | هُوَ | السَّمِيْعُ | الْعَلِيْمُ﴿۲۲۰﴾ |
|---|---|---|---|---|
| په سجده کونکو کښې | بیشکه هغه | خاص هغه | ښه اوریدونکې دې | ښه عالم دې |

| پورته کیدل هم وینې \| هغه ډیر ښه اوریدونکې په هر څه پوهه دې \| |
|---|

**قوله تعالی:- فَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا**

**دالله ﷻ خپل نبی ته هدایت:-** الله تعالی خپل نبیﷺ ته خطاب کوی فرمانی چه صرف زما عبادت کوه. ما سره څوك مه شریکوه.چه څوك هم داسې اونکړی هغه ضرورمستحق دسزادې.خپل نزدې رشته دار خبردارکړه.چه سواد ایمان نه هیڅ یو څیزنجات ورکونکې نه دې.بیا حکم ورکوی.چه موحد د سنت متبع خلقوسره په خوشحالئ سره یوځائې اوسیږه.اوچه څوك هم زما نه منی.که هغه څوك هم وی.ته د هغۀ سره تعلق مه ساته.اوخپله بیزاری ورته ښکاره کړه.دا خاص طورسره خاصوخلقوته تنبیه، عاموخلقوته د تنبیه منافی نه ده.څکه چه دادهغې حصه ده.بل ځائې ارشاددې.ته هغه قوم اویروه.چه د هغوی مشران هم نه دی یرولی شوی.چه هغوی په غفلت کښې پراتۀ دی.په بل آیت کښې دی ﴿وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰی وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ چه ته مکې والا او ددې ګیرچاپیره خلق ټول اویروې.په بل آیت کښې دی.ته ددې نه هغه څوك خبردارکړه څوك چه خپل رب سره دجمع کیدونه ویریږی.په بل آیت کښې ئې ارشاد اوفرمائیلو.چه ته په دې سره پرهیزګارانوته خوشخبری واوروه.او نافرمان اویروه.په بل آیت کښې ئې اوفرمائیل. ﴿لِاُنْذِرَکُمْ بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ﴾ چه زه په دې قرآن سره تاسواوچه چاته هم دا اورسیږی اویروم.بل فرمان دې.چه دې سره په دې ټولوډلوکښې څوك هم کفر اوکړی.دهغۀ سزاجهنم دې.دصحیح مسلم په حدیث کښې دی.چه دهغه ذات قسم دچا په قبضه کښې زماً ساه ده.په دې اُمت کښې چه دچا په غوږ کښې زما خبر اورسی.که هغه یهودی وی اوکه نصرانی اوبیاهغه په ما باندې ایمان رانۀ وړی.نوضروربه جهنم ته خی.ددې آیت په تفسیرکښې ډیر حدیثونه دی.واوړیٔا([1])

**قوله تعالی:- وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ﴿۲۱۴﴾**

**دصفا په غرباندې دنبیﷺ دتوحید اعلان:-** په مسنداحمدکښې دی.چه کله الله تعالی داآیت نازل کړو.نو نبی کریمﷺ صفا غرته اوختلو.او یَاصَبَاحَاه کولوسره ئې آواز اوکړو.خلق جمع شول.څوك چه نه شو راتلې هغوی خپل سړی راولیږلو.دغه وخت نبی کریمﷺ اوفرمائیل.أې د عبدالمطلب اولادهٔا أې د فهراولادهٔا تاسو اووایئ که زه تاسوته اووایم.چه ددې غرپه شا باندې ستاسو د دشمن لښکر پروت دې.حملې ته تیاردې.موقعه موندلوسره به تاسوټول قتل کړی.نو آیا تاسویه ما رښتونې اوګنړئ؟ټولویه یوآواز اوونیل.چه آو مونږبه تا رښتونې ګڼړو.اوس نبی کریمﷺ اوفرمائیل واوړیٔا زه تاسود راتلونکو سختو عذابونونه ویرونکې یم.په دې باندې ابولهب ملعون اوونیل.ته هلاك شې هم ددې اورولو دپاره دې مونږ راغوښتلی وو. ددې په جواب کښې سورة تبت یدا نازل شو([2]).(بخاری ومسلم وغیره)

❷ په مسنداحمد کښې دی.چه ددې آیت په نازلیدلو دالله تعالی نبیﷺ پاسیدلو.اووې فرمائیل.أې فاطمه بنت محمدأای صفیه بنت عبدالمطلب واوریٔا زه دالله تعالی په نزدستاسویه څه کارنه شم راتلې.البته ماسره چه کوم مال دې چه څومره غواړئ زه درکولو دپاره تیاریم.(مسلم)([3]) ابوهریرهؓ

---

[1]) ددې تخریج سورة آل عمران کښې آیت نمبر ۲۰ لاندې تیر شوې دې .

[2]) احمد:۳۰۷/۱، صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الشعراء باب( واللدر عشیرتک الاقربین واخفض جناك ) : ۴۷۷۰. صحیح مسلم: ۲۰۸، ترمذی : ۳۳۶۳.

[3]) احمد: ۱۸۷/۶، صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قول الله تعالی ( وانذر عشیرتک الاقربین) :۲۰۵.

فرماني.چه ددې ايت نازليدلوسره نبی کريمﷺ قريش راوغوښتل.اوهغوی ته ئې يويو ته اوعام طور باندې خطاب اوکړو،وې فرمائيل.چه اې قريشو! خپل خانونه دجهنم نه بچ کړئ.اې دکعب خاندان والو! خپل خانونه د اورنه بچ کړئ.اې دهاشم اولاد والو! خپل خانونه دالله د عذابونونه خلاص کړئ.اې د عبدالمطلب خامنو!دالله دعذابونونه د بچ کيدو کوشش اوکړئ.اې فاطمه بنت محمد! خپل خان ددوزخ نه بچ کړه.زه دالله سره دهيڅ څيز مالك نه يم.بيشکه ستاسو رشته داری ده.چه دهغې دنياوی حقونو کښې به هرشان اداکولو ته تياريم(۱).(مسلم وغيره)

په بخاری کښې هم لږ دالفاظو تبديلئ سره داحديث نقل دې.په هغې کښې داهم دی.چه نبی کريمﷺ خپلې ترورحضرت صفيهؓ او خپلې لور حضرت فاطمېؓ ته داهم اوفرمائيل.چه زما دمال نه دې څه خوښ وی اوغواړه.په ابويعلی کښې دی.چه نبیﷺ اوفرمائيل.اې دقصی،اې دهاشم،اې د عبدمناف اولاده!يادساتئ! زه يرونکې يم.او مرګ بدله ورکونکې دې.ددې چهاپه راروانه ده.اوقيامت د وعدې خائې دې.(۲)

په مسنداحمدکښې دی.چه په نبیﷺ باندې دا آيت نازل شو.نوهغوی يوغرته اوختل.چه دهغې په غوندئ باندې کاڼړی وو.نبیﷺ چه هلته اورسيدلو،نووې فرمائيل.اې بنو عبدمناف! زه خو صبر خبردار کونکې يم.زما اوستاسو مثال داسې دې.لکه چه يوسړی دشمن اوليدلو.اوبه منډه دخپلوخلقو خبردارکولو دپاره راغې.چه هغوی حفاظت اوکړی.د لرې نه هغه شور جوړ کړو.چه دمخکښې نه خبردار شی(۳).(مسلم نسائی وغيره)

حضرت علیؓ نه نقل دی.چه کله دا آيت نازل شو.نونبی کريمﷺ خپل اهل بيت جمع کړل.دا ديرش سړی وو.کله چه هغوی خوراك څکاك اوکړو.نونبیﷺ اوفرمائيل.څوك شته چه هغه زما قرض په خپله ذمه واخلی.اوزما نه روستو زما وعدې پوره کړی.هغه به جنت کښې هم زما ملګرې اوزما په اهل کښې به هم زما خليفه وی.نويوسړی اووئيل.چه تاسوﷺ خو يوسمندر يئ.تاسوسره څوك اودريدلې شی؟ درې ځل نبیﷺ اوفرمائيل.ليکن څوك تيار نه شول.نوما اووئيل اې دالله رسولهﷺ! زه ددې دپاره تياريم(۴).(مسنداحمد)

يويل سند سره ددې نه زيات تفصيل سره روايت دې.چه نبیﷺ بنوعبدالمطلب جمع کړل.دا يوه ډله وه.او ډير خوراکيان وو.يويو سړی به د يوې يوې چيلئ بچې خوړلو.يوه غټه پيالئ به ئې د پيوڅکله دومره برکت واچولو.چه ټولوپه مړه خيټه اوخوړلو.اوبه په مړه خيټه ئې اوڅکل.ليکن نه خوپه خوراك کښې کمی ښکاريدله.نه دڅکلوڅيزکم شوې معلوميدلو.بيا نبیﷺ اوفرمائيل.اې د عبدالمطلب اولاده! زه تاسو طرف ته خصوصاً اوټولو خلقوطرف ته عام طورباندې نبی جوړشوې راليږلې شوې يم.دا وخت تاسو سوه معجزه هم زما اوليدله.اوس په تاسوکښې څوك تياردې.چه ماسره بيعت اوکړی.هغه به زما رور او زما ملګرې وی.ليکن يوسړې هم په ډله کښې پانه سيدلو، سوا زما نه.اوزه هغه وخت د عمر په لحاظ سره دهغوی ټولونه وړوکې ووم.نبیﷺ اوفرمائيل.ته کينه.درې ځل نبیﷺ هم دا اوفرمائيل.او درې واړه ځل سوا زمانه بل څوك پانه سيدلو.په دريم ځل نبیﷺ زه بيعت کړم.

---

۱) صحيح بخاری کتاب الايمان باب قول ﴿ وانذر عشيرتک الاقربين﴾: ۲۰٤، ترمذی : ۳۱۸٤.

۲) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الشعراء باب قول ﴿ وانذر عشيرتک الاقربين﴾:٤۷۷۱. صحيح مسلم: ۲۰٦.

۳) صحيح مسلم: ۲۰۷، السنن الکبری للنسائي : ۱۸۱۵. احمد:۵/٦۰.

٤) احمد: ۱/۱۱۱، وسنده ضعيف جدا عباد بن عبدالله سخت ضعيف دې او اعمش مدلس راوی دې .

امام بیهقی رحمه الله په دلائل النبوت کښې نقل کړې دی.چه کله دا ایت نازل شو.نو نبی ﷺ اوفرمائیل.که زهٔ خپل قوم ته اوس دا پیش کړم.نوهغوی به اونه منی.او داسې جواب به راکړی.چه مابه خفه کړی.پس نبی ﷺ خاموش شو.په دې کښې حضرت جبرئیل علیه السلام راغې.او وې فرمائیل.حضرت! که تاسویه ارشاد منلوکښې تاخیراوکړو نوویره ده چه تاته به سزاملاوشی.هم هغه وخت نبی ﷺ علی رضی الله عنه راوغوښتلو.اووې فرمائیل.ماته حکم شوې دې.چه زهٔ خپل نزدې رشته داران اویروم.ما دا خیال اوکړو .چه که دمخکښې نه هغوی ته اووئیلې شی.نودوی به ماته داسې جواب راکړی.چه په هغې سره به ماته تکلیف اورسیږی. نو زهٔ خاموش شوم.لیکن جبرئیل راغې.اووې وئیل چه که تاداسې اونکړل.نوتاته به عذاب اوشی.نو اوس اې علی! ته یوه چیلۍ ذبح کړه،غوښه پخه کړه.اوڅه درې سیره غله هم تیاره کړه.او یوه غټه پیالۍ دپیوهم ډکه کړه.اود عبدالمطلب اولادهم جمع کړه.ماهم دغه شان اوکړل.اوټولوته مې دعوت ورکړو . څلویښت سرې جمع شول.که یونیم کم یا یونیم زیات وو. په هغوی کښې دنبی علیه السلام ترونه هم وو.ابو طالب، حمزه، عباس رضی الله عنه او ابولهب کافرخبیث. ما اینګلې پیش کړو.نونبی علیه السلام دهغې نه یو پوټې واخستلو.څه ئې اوخوړلو.بیائې په کټوئ کښې واچولو.اووې فرمائیل.دالله نوم واخلئ او خوراك شروع کړئ.ټولو خوراك شروع کړو. تردې چه خیټې ډکې شوې.لیکن په الله قسم! غوښه هغومره وه څومره چه دایخودلوپه وخت پرته وه.صرف دهغوی دګوتو نخښې وې.خو غوښه لږه هم نه کمه شوې نه وه.حالانکه هغوی کښې به یویوکس ډیر زیات غوښه خوړله.بیائې ماته اوفرمائیل اې علی! په دوی پئ اوڅکوه. ما هغه پیالۍ راوړله.ټولوپه نمبرنمبر په مړه خیټه اوڅکل.اوښه ماړهٔ شول.لیکن پئ بالکل کم نه شول. حالانکه هغوی کښې به یویوکس دومره پئ څکل.اوس نبی کریم ﷺ څه فرمائیل اوغوښتل لیکن ابو لهب په جلتئ پاسیدهٔ.اووې وئیل.اې صاحبه! اوس معلومه شوه.چه دا ټوله جادوګری صرف ددې دپاره وه.نومجمع هم هغه وخت پاسیدله.اوهر یویه خپله لار روان شو.اونبی کریم ﷺ ته دنصیحت اوتبلیغ موقع ملاؤ نه شوه.

په دویمه ورځ نبی ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته اوفرمائیل.نن بیادغه شان هغوی ټولوته دعوت اوکړه.څکه چه پرون هغهٔ ماته د وئیلوموقع رانکړه.مابیا هغه شان انتظام اوکړو. ټولوته مې دعوت ورکړو.هغوی راغلل خوراك څکاك ئې اوکړو.بیاد پرون پشان نن هم ابولهب پاسیدهٔ.هم هغهٔ خبره ئې اوکړه.اوهغه شان خوارهٔ وارهٔ شول.په دریمه ورځ بیا نبی کریم ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته هم دا اوفرمائیل.نن چه کله ټولو خوراك څکاك اوکړو.نونبی علیه السلام په جلتئ سره خپله خبره شروع کړله.اووې فرمائیل.اې بنوعبدالمطلب! په الله قسم! هیڅ یوځوان سړې خپل قوم ته ددې نه غوره خیرنه دې راوړلې.کوم چه ماتاسوته راوړلې دې.ماد دُنیا اوآخرت خیر راوړلې دې(۱).

په بل روایت کښې ددې نه پس داهم دی.چه نبی ﷺ اوفرمائیل.اوس اووایئ په تاسوکښې څوك زما موافقت کوی او زما ملګرتیا کوی؟ ماته دالله تعالی حکم شوې دې چه مخکښې زهٔ تاسوته ددې لارې دعوت درکړم.څوك چه نن زما اومنی.هغه به زما رور وی.او دا درجې به ملاویږی.ټول خاموش شول.لیکن حضرت علی رضی الله عنه چه هغه دغه وخت په دغه مجمع کښې دټولونه کم عمره وو.او خوږسترګو والا،او غټې خیټې والا،او غټو پنډو والاوو.هغهٔ اووئیل.چه اې دالله رسوله ﷺ! په دې کارکښې ستاسو وزارت زه قبلوم. نبی علیه السلام زما په څټ باندې لاس کیخودلو،اووې فرمائیل.چه دا زما روردې.او داسې داسې فضیلتونو والادې.تاسو دهٔ اورئ او منئ.په دې اوریدوسره هغوی ټول په خندا پاسیدل.او ابو طالب ته ئې اووئیل.اوس ته دخپل بچی آوره او منه(۲).لیکن ددې راوی عبدالغفاربن قاسم ابومریم

---

(۱) دلائل النبوة (۲/۱۷۸. ۱۸۰)

(۲) ابن جریر

متروك دي.كذا ب دي.او شيعه هم دي.ابن مديني وغيره فرمائي.دة به دخانه حديثونه جوړول.نورو آنمه دحديثوهم دة لره ضعيف ليکلي دي.په بل روايت کښي دی.چه په دې دعوت کښي صرف د چيلي د يوي خپې غوښه پخه شوي وه.په هغې کښې داهم دی.کله چه نبی ﷺ خطبه ورکړله.نوهغوی فورا اوونيل چه دنن پشان جادو خومونږ کله هم نه دي ليدلي.په دې باندې نبی ﷺ خاموش شو.په هغې کښې دنبی ﷺ خطبه داده.چه څوك دي هغه کس چه هغه زما قرض په خپله ذمه واخلي.اوزما په اهل کښي زما خليفه جوړشي.په دې باندې ټول خاموش شول.او عباس رضی الله عنه هم چپ وو.صرف دخپل مال د بُخل په وجه ما عباس رضی الله عنه خاموش اوليدلو اوخاموش شوم.نبی ﷺ دوباره هم دا اوفرمائيل.دوباره هم هرطرف ته خاموشي وه.اوس خوزة چپ نه شوم پاتې کيدې.اوما اوونيل.زة دغه وخت دهغوی ټولونه کمزوری حالت والا،خوږ سترګو والا، غټې خيټې والا، او درنو پنډو والا ووم.

په دې روايتونوکښي چه کوم دنبی کريم ﷺ فرمان دې.چه څوك زما قرض په خپله ذمه اخلي.اوزما نه پس زماد اهل حفاظت په خپله ذمه اخلي.ددې نه دنبی ﷺ مطلب داوو.چه زة کله داد دين تبليغ خوروم.او خلق دالله توحيد طرف ته رابلم.نوټول په ټوله به زما دشمنان جوړشي.اوما به قتل کړي.هم دا ويره نبی ﷺ ته لګيدلي وه.تردې چه دا آيت نازل شو.﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾الله تعالى به تادخلقو د تکليف رسولونه بچ کوي،،دغه وخت نبی ﷺ بې خطرې شو.ددې نه مخکښې به نبی ﷺ خپله پهره او څوکئ هم کينوله.ليکن ددې آيت نازليدلونه پس ئې داهم لرې کړل.دغه وخت يقينا په ټول بنوهاشم کښي د حضرت علي رضی الله عنه نه زيات ايمان والا اوتصديق اويقين والا څوك نه وو.په دې وجه صرف هغه نبی ﷺ سره اقراراوکړو.ددې نه پس نبی ﷺ په صفا غرباندې دعوت ورکړو.اوخلق ئې خالص توحيد طرف ته راوبلل.او دخپل نبوت اعلان ئې اوکړو.

**قوله تعالى:- فَإِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ إِنِّي بَرِيٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ﴿۲۱۶﴾**

**تسلي ته نبي ﷺ ته اوترغيب الى الايمان:-** په ابن عساکرکښې دی.چه يوځل حضرت ابودرداء رضی الله عنه په جمات کښې ناست وو.وعظ ئې کولو.فتوې ئې ورکولې.مجلس پوره ډك وو.دهريوسترګو دهغوی مخ ته کتل.او شوق سره ئې اوريدل.ليکن دهغة ځوي او کوروالا سړی په خپل مينځ کښي ډير بې پرواهئ سره په خپلو خبروکښې مشغول وو.چاحضرت ابودرداء رضی الله عنه متوجه کړو.چه نورټول خلق خوپه زړة سره ستاسو علمي خبرې اورې.ستاسو دکورخلق ددې نه بالکل بې پرواه دی.هغوی په خپلوخبروکښې ډير بې پرواهئ سرد مشغول دی.نوهغوی په جواب کښې اوفرمائيل.ماد رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی.ددنيا نه بالکل يوطرف ته کيدونکی انبياء عليهم السلام وی.او په هغوی باندې دټولونه زيات سخت او بوج د هغوی رشته داران وی.هم په دې باره کښې آيت ﴿وانذر﴾ نه ﴿تعلمون﴾ پورې دې.

بيا فرمائي.په خپلوټولوکارونوکښې خاص په الله تعالى باندې أميد ساتئ؛هم هغه ستا حفاظت کونکې اومددګاردې.هم هغه ستا تائيدکونکې او ستاکلمې لره اوچتونکې دې.دهغة نظر هروخت په تا باندې دې.لکه چه فرمان دې﴿وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا﴾دخپل رب په حکمونوباندې صبرکوه.ته زمونږد سترګو په وړاندې يې.دامطلب هم دې.چه کله ته مانځة ته اودريږې.نو زمونږ دسترګومخکښې يې.مونږ ستا رکوع اوسجدې وينو.(۱)که ولاړ يې اوکه ناست يې،ياپه بل حالت کښې يې زمونږپه نظرکښې يې.يعني که په يواځې والی کښې ته مونځ کوې نو مونږتا وينو.اوکه جماعت سره کوې نوزمونږ دنظر مخکښې يې.(۲)دامطلب هم دې.چه الله تعالى به دمونځ په حالت کښې څنګه نبی ﷺ ته دهغوی مخامخ څيزونه

---

(۱) الطبری : ۴۱۲/۹.

(۲) الطبری : ۴۱۳/۹.

خودل،دنبی ﷺ شاته مقتدیان به هم دهغوی په نظرکښې وو.لکه چه حدیث کښې دی چه نبی ﷺ به فرمائیل صفونه نیغ ساتئ:زهٔ تاسو دخپل شا نه وینم (۱).ابن عباس ؓ دامطلب هم بیانوی.چه دنبی دشا نه دبل نبی شاطرف ته منتقل کیدل مونږ مسلسل لیدل.ترديږ چه ته په حیثیت د نبی دنیاته راغلې.هغه الله ﷻ دخپلوبندګانوخبرې ښه آوري.ددوی په حرکتونو اوخاموشئ ښه پوهیږي.لکه چه فرمائی (وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ)ته چه په کوم حالت کښې یې،ته چه کوم قرآن لولې،ته چه کوم عمل کوې،په هغې مونږ ګواه یو.

هَلْ أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَنْ تَنَزَّلُ الشَّيَاطِينُ ﴿٢٢١﴾ تَنَزَّلُ

ایا خبر درکړم تاسو ته اے خلقو | په هغه چا | چې راکوزیږی پرې | شیطانان | هغه راکوزیږی |

ایازه تاسو ته اوښایم چې شیطانان په چا باندې راکوزیږي | هغوئ په هر

عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴿٢٢٢﴾ يُلْقُونَ السَّمْعَ وَأَكْثَرُهُمْ

په هر دروغژن | ګنهګار باندې | رسوی شیطانان | غوږونو ته اوریدل (خبرې) | او اکثر دهغوئ |

دروغژن بدکار باندې راکوزیږی | چې هرې خبرې ته غوږ ایږدی | اودا سې خلق زیات

كَاذِبُونَ ﴿٢٢٣﴾ وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ ﴿٢٢٤﴾ أَلَمْ تَرَ

دروغژنان دی | او شاعران (خلق) چې دی | پیروی کوی دهغوئ | ګمراهان خلق | ایا نه وینې ته

دروغژن وی | اوپاتې شول شاعران نو دهغوئ په لاره خو ګمراه خلق روان دی | ایا تاته معلومه نه ده

أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ ﴿٢٢٥﴾ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ

چې بیشکه هغوئ | په هره کنده کښې | سرګردانه ګرزی | او بیشکه چې هغوئ | وائی

چې هغوئ په هر میدان کښې سرګردان ګرځی | اوهغه څهٔ وائی چې په خپله پرې

مَا لَا يَفْعَلُونَ ﴿٢٢٦﴾ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا

هغه څه | چې نهٔ یې کوی هغوئ | مګر | هغه کسان | چې ایمان یې راوړو | او عملونه یې اوکړل

عمل نه کوی | سوا دهغه خلقو نه چې ایمان یې راوړې دې | او ښه ښه کارونه کوی | او الله

الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا وَانْتَصَرُوا مِنْ بَعْدِ

نیک | او یاد کړو هغوئ الله | ډیر | او صرف بدل یې واغستو | پس دهغې نه

ډیر ډیر یادوی | اوکله چې په هغوئ ظلم اوکړې شی | نو د هغې نه روستو

مَا ظُلِمُوا وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنْقَلَبٍ

چې ظلم اوشو په هغوئ | اوزر به پوهه شی | هغه خلق | چې ظلم یې اوکړو | چې دکوم انجام سره به

خپله بدله نه اخلی | ظالمانو ته به ډیر زر معلومه شی | چې هغوئ دعذاب کوم خراب

يَنْقَلِبُونَ ﴿٢٢٧﴾

مخ کیږی هغوئ |

خائې ته واپس تلونکی دی

(۱) صحیح بخاری کتاب الاذان باب تسویة الصفوف عندالاقامة وبعدها: ۷۱۸.

**قوله تعالی:- هَلْ أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَنْ تَنَزَّلُ الشَّيَاطِينُ ﴿﴾**

**قران دکاهن، شاعر یاشیطان قول بالکل نه دې بلکه؟**:مشرکانوبه وئیل چه دنبی کریم ﷺ راوړلې شوې داقرآن حق نه دی.دوی دادخانه جوړکړې دې.یا دوی ته دجناتو سردار راځي.اوهغه ئې ورته ښائي.پس الله تعالی خپل رسولﷺ ددې اعتراض نه پاك كړو.اوثابته ئې کړه چه نبی کریمﷺ کوم قرآن راوړلې دې.دا د الله تعالی کلام دې.هغه نازل کړې.بزرګ، امانتدار،طاقتور فرشتې راوړلې دې.داد شیطان یاجن د طرفه نه دې.شیطانان خود قرآن په تعلیم غصه کیږی.ددې تعلیم خودهغوی بالکل خلاف دې. دهغوی څه کاردې چه داسې پاکیزه اوپه نیغه لار باندې راوستونکې قرآن هغوی راوړی.او خلقوته نیغه لار اوښائي.هغوی خودځان پشان انسانی شیطانانوته راځي.چه هغوی په مړه خیټه دروغ ویونکی وی. بد کرداراوګناهګاروی.داسې کاهنانو،بدکارانو،اودروغژن خلقوته جنات اوشیطانان راځي.ځکه چه هغوی هم دروغژن او بدعمله دی.راتختولې بعضې نیم خبره آوری او رسوی.اوهغه یوه نیمه خبره کومه ئې چه آسمان نه په پټه اوریدلې وی.په هغې کښې نورې خبرې ملاوئ اود کاهنانو غوږونوته ئې رسوی.هغوی د خپل طرفه بیا ډیرې خبرې ملاوهی اوپه خلقوکښې ئې خوروی.بس اوس یوه رښتیا خبره خوربښتیا شی.لیکن خلقو دهغوی نورې سل دروغ خبرې هم رښتیا اومنلې.او تباه شول.

**قوله تعالی:- تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴿﴾**

**کاهنانو ته خبرې شیطان راوړی**:-په بخاری کښې دی چه خلقودکاهنانو باره کښې درسول اللهﷺ نه سوال اوکړو.نونبیﷺ اوفرمائیل.هغه هیڅ څیزنه دې.خلقو اووئیل.اې دالله رسولهﷺ! کله کله خو د هغوی خبره رښتیاکیږی هم.نبیﷺاوفرمائیل.او داهم هغه خبره وی.کومه چه جنات دآسمان نه راتختوی.اود هغوی غوږونوته ئې رارسوی.بیا دهغې سره سل دروغ خبرې دخپل طرفه یوځائې کوی. (۱)

د صحیح بخاری په یوحدیث کښې داهم دی.چه کله الله تعالی دڅه کارفیصله په آسمان کښې کوی. نو فرښتې په ادب سره خپلې وزرې خوروی.داسې آواز راځي.لکه چه په یوه غونډئ باندې زنځیر شړ نګیږی.کله چه دا ویره دهغوی د زړونونه لرې شی.نوبه خپل مینځ کښې تپوس کوی.چه د رب څه حکم اوشو؟نورې جواب ورکوی.چه حق ئې اوفرمائیل.اوهغه ډیر اوچت اولوئې شان والادې.کله کله دالله ﷻ حکم په غلا پټ اوریدونکی جن په غوږونوکښې هم پریوځي.چه هغه دغه شان یوپه یوهلته رسیدلې وی.د حدیث راوی حضرت سفیانؒ دخپلو لاسونوګوتې خورې کړلې.په هغې ئې بل لاس داسې کیخودۀ.اودهغې په خوزولوئې اوخودل.چه دغه شان اوس پورتنئ لاندینئ ته اوهغه دځان نه لاندې والا ته هغه خبره ښائي.تردې چه جادوګرو اوکاهنانوته هغه اورسوی.کله داسې هم کیږی.چه د خبرې رسولونه مخکښې شعله رارسی.اوکله ئې دهغې نه مخکښې هغوی رسوی.په هغې کښې کاهنان جادوګرخپل سل دروغ ملاوی اومشهورروی.چونکه هغه یوه خبره رښتیا راوځي.خلق ټولې خبرې رښتیا ګنړی(۲).ددې ټولو حدیثونوبیان به د﴿حَتَّىٰ إِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ﴾ په تفسیر کښې راشی. انشاءالله.

**قوله تعالی:- وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ ﴿﴾**

دبخاری په یوحدیث کښې داهم دی.چه فرشتې دآسمانی حکم خبرې اترې په وریځوکښې کوی.چه هغه شیطانان اوری او کاهنانوته ئې رسوی.اوهغوی په یو رښتیا کښې سل دروغ ملاوئ.بیا فرمائي.چه د کافرانوشاعرانو تابعداری ګمراهان خلق کوی.دعربوشاعرانو دستور وو.چه دچا په مذمت اورسوایئ

---

۱) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قراء الفاجر والمنافق اصواتهم وتلاوتهم ...:۷۵۶۱.

۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة سبا باب ( حتی اذا فزع عن قلوبهم قالوا ماذا قال ربکم....): ۴۸۰۰. ابوداود: ۳۹۸۹.

کښې به ئې څه وئيل.دخلقو يو جماعت به هغوی سره شو.اودهغوی په آوکښې به ئې آو ملاؤولو.رسول اللهﷺ دصحابوﷺيوجماعت سره په عرج کښې روان وو.چه يوشاعرشعرونه وينکې ملاوشو.نبیﷺ اوفرمائيل.دا شيطان اونيسئ.يائې اوفرمائيل منع ئې کړئ.څوك چه په تاسوکښې د وينې او زوې نه خپله خيټه ډکه کړی دادډې نه غوره ده چه هغه دشعرونونه خپله خيټه ډکه کړی.هغوی په ځنګل کښې ټکرې وهلې او هيڅا اونه ليدل(۱).په هرفضول کښې دوی شريکيږی.دکلام په هرفن کښې لګياوی.کله د چا په تعريف کښې د زمکې اوآسمان لونې والې ملاوی.(۲)کله دچا په مذمت کښې آسمان زمکه په سراوچتوی.(۳)دروغ تعريفونه،خوشامدی کونکې خبرې،دروغ بدئ،دخانه جوړې شوې بدئ دهغهٔ په حصه کښې را خی.د ژبې باتوران وی.ليکن د کارسست وی.يوانصاری اودبل يوقوم سړی په مقابله کښې هجوه اوکړله.چه په هغې کښې د دواړو قومونو لونې لونې خلق هم دهغوی ملګری شول.

**په شعر کښې د اعتراف جرم حد کښې د علماء کرامو اختلاف**:-پس په دې آيت کښې هم دادی چه ددوی سره ملګرتياکونکی ګمراه خلق هم دادا خبرې جوړوی(۴).چه داکله هم نه وی شوې.په دې وجه عالمانو په دې خبره کښې اختلاف کړې دې.چه که يوشاعرپه خپل شعرکښې ديوې داسې ګناه اقرار اوکړو.چه په هغې باندې شرعی حد واجبيږی.نوآياداحد به په هغهٔ باندې جاری کيږی اوکه نه؟دواړوطرف ته عالمان تلی دی.يقيناً هغوی فخر اوغرورسره داسې خبرې جوړوی.چه مادا اوکړل او دامې اوکړل. حالانکه نه به ئې څه کړې وی اونه کولې شی.

اميرالمؤمنين حضرت عمربن الخطابﷺ دخپل خلافت په زمانه کښې حضرت نعمان بن عدی بن نضلة دبصرې ښار يسار ګورنر کړې وو اودې شاعر وو،ده يوځل پخپلو شعرونوکښې اووئيل چه آیا حسينانو (ښائستاو) ته دا خبرنه دې شوې.چه دهغوی محبوب په يسان کښې دې.چه هلته هروخت د شيشې په ګلاسونو کښې د شرابو دورچليږی.اود کلی دپيغلوجينکو ګانې او دهغوی ګډا اولوبې هم کيږی.البته که زما د يودوست نه کيدې شی نودهغې نه دې غټ او ډك جامونه په ما اوڅکی. ليکن د هغې نه واړه جامونه زما سخت ناخوښه دی.الله دې اوکړی چه اميرالمؤمنين ته زما داخبر اونه رسی. ګنې هغه به بد اوګڼی.اوسزا به راکړی.دا اشعارپه رښتيا حضرت اميرالمؤمنينﷺ ته اورسيدل.هغه سخت خفه شو.اوهم دغه وخت ئې سړې رااوليږلو.چه ته ماد عهدې نه معزوله کړې.اوهغوی يوخط اوليږلوچه په هغې کښې د(بِسۡمِ اللّٰهِ)نه پس د(حٰمٓ)درې آياتونه(اِلَيۡهِ الۡمَصِيۡرُ)پورې اوليکل.بيائې اوليکل. چه ستا شعرونه ما واوريدل زهٔ سخت خفه شوم.زهٔ تا ستاد عهدې نه معزولوم .بس دې خط لوستلوسره حضرت نعمانﷺ دربارخلافت ته حاضرشو.او ادب سره ئې عرض اوکړو.چه اميرالمؤمنين! په الله قسم! نه ماکله شراب څکلی، نه مې ډمتوب، ګانې بجانې ليدلې اونه مې اوريدلی.داخو صرف د شاعرئ يو ترنګ وو.اميرالمؤمنينﷺ اوفرمائيل.هم دا زما خيال دې ليکن زما همت نه جوړيږی چه داسې فحش وينکی شاعرته څه عهده ورکړم.پس معلومه شوه چه دحضرت عمرﷺ په نزدهم شاعرپه خپلو شعرونو کښې دڅه جرم په اعلان باندې حد سره نه شی وهلې.اګرچه هغه قابل دحد وی.خکه چه هغوی هغه وائی چه کوی ئې نه.البته هغه قابل دملامتيا اود رټلو لائق ضروردې.

---

(۱) صحيح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفة ابليس وجنوده : ۳۲۸۸.

(۲) الطبری : ۴۱۷/۱۹.

(۳) احمد: ۸/۳ صحيح مسلم کتاب الشعر باب انشاد الاشعار وبيان الشعر الکلمة وذم الشعر: ۲۲۵۹.

(۴) الطبری : ۴۱۷/۱۹.

**رسول کریم ﷺ د کاهن او شاعر نه پاك دې:-** په حدیث کښې دی چه خیټه ګلمې د پیپ نه د کول د شعرونو د کولونه بهتردی([1]).مطلب دادې چه رسول کریم ﷺ نه خوشاعردې.نه جادوګردې نه کاهن دی نه دخانه جوړونکې دې.دهغوی ظاهری حال هم دهغوی ددې عیبونونه دپاکوالی ډیر لوئې عادل ګواه دې.لکه چه فرمان دې.چه نه خومونږ هغوی ته شعرونیل خودلی دی.نه هغه ددې لائق دې.داخو صرف نصیحت دې.اوپه قرآن مبین کښې دې.په بل آیت کښې دی چه درسول کریم ﷺ قول دې.دشاعرنه دې په تاسوکښې دایمان کمې دې.دا دکاهن قول نه دې.په تاسوکښې دنصیحت منلو ماده کمه ده.داخو د رب العالمین نازل کړې شوې کتاب دی.په دې سورة کښې نې هم دا اوفرمائیل.چه دا درب العالمین د طرفه نازل شوې دې.روح الامین ستاپه زړهٔ باندې نازل کړې دې.په عربئ ژبه کښې دې.دې دپاره چه ته خلق هوښیارکړې.دې لره شیطانان نه راوړی.نه هغوی ددې لائق دی.نه دهغوی د وس خبره ده.هغوی خوددې داوریدلونه هم لرې کړې شوی دی.څوك چه دخانه جوړونکې او بدکردار وی.هغوی ته شیطانان راځي.چه هغوی راتختولې شوې اوریدلې شوې خبرې اوروی.دهغوی غوږونوته نې اچوی.خالص دروغ ویونکی پخپله وی.د شاعرانو ملګرتیا د فضولوخلقو کاردې.هغوی خوپه هره وادئ کښې سرګردانه وی.هسې د ژبې خبرې جوړوی. دعمل نه ناآشنا وی.

قوله تعالى:- الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّلِحٰتِ

**مؤمن شاعران ددې حکم نه مستثنی دی:-** ددې نه پس چه کوم فرمان دې.دهغې شان نزول دادې چه ددې نه پس آیت چه په هغې کښې د شاعرانومذمت دې.چه کله نازل شونود رسول الله ﷺ د دربار شاعران حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه، حضرت عبدالله بن رواحه رضی الله عنه اوکعب بن مالك رضی الله عنه په ژړا دنبی ﷺ دربارته حاضر شول.اووې ونیل چه اې دالله رسوله ﷺ! دشاعرانو خودا حال شو اومونږهم شاعران یو. دغه وخت نبی ﷺ دا دویم آیت تلاوت کړو.چه ایمان والا اونیك عمل کونکی تاسو یئ.د الله ذکرکثرت سره کونکی تاسو یئ.سره د مظلوم کیدونه بدله نه اخستونکی تاسویئ.پس تاسو دهغوی نه جُدا یئ ([2]).(ابن ابی حاتم وغیره)

په یو روایت کښې دحضرت کعب رضی الله عنه نوم نشته.په یو روایت کښې صرف دحضرت عبدالله رضی الله عنه په دې شکایت باندې چه اې دالله رسوله ﷺ! شاعر خوزهٔ هم یم.ددې دویم آیت نازلیدل نقل دی.خودا قابل د شك دې.ځکه چه دا سورة مکی دې انصارشاعران په مکه کښې نه وو.هغوی ټول په مدینه کښې وو.بیا د هغوی باره کښې دا آیت نازلیدل به یقینًا قابل دغور وی.اوکوم حدیثونه چه بیان شول هغه مرسل دی.په دې وجه اعتماد پرې نه شی کیدې.دا آیت بې شکه د استثناء باره کښې دې.اوصرف هم دا انصاری شاعران رضی الله عنهم نه بلکه که یوشاعر دخپل جاهلیت په زمانه کښې داسلام اومسلمانانوخلاف هم شعرونه وئیلې وی.اوبیا هغه مسلمان شی توبه اوکړی اودهغې په مقابله کښې دالله ذکر کثرت سره اوکړی. هغه بې شکه د بدئ نه جدادې.نیکئ بدو لره لرې کوی.حالانکه هغهٔ مسلمانانوته اود الله دین ته بدونیلی وو.هغه بد وو.لیکن کله چه هغه تعریف اوکړو.هغه بدی په ښهٔ والی بدل شوه.لکه چه حضرت عبدالله بن الزبعری رضی الله عنه داسلام نه مخکښې د نبی کریم ﷺ هجوه بیان کړې وه.لیکن داسلام نه پس نې ډیرتعریف بیان کړو.اوپه خپلو شعرونو کښې نې ددې هجوه عُذرهم بیان کړو.چه هغه وخت زهٔ د شیطان په پنجه کښې راګیر ووم.دغه شان ابوسفیان بن حارث سره ددې چه د رسول الله ﷺ دترهٔ خوئ وو. خود نبی ﷺ دشمن وو.او ډیره هجوه به نې کوله.کله چه مسلمان شو.نوداسې مسلمان شو.چه په ټوله دنیا کښې دنبی کریم ﷺ نه زیات محبوب هغهٔ ته هیڅوك نه وو.اکثربه نې درسول الله ﷺ تعریف

[1] صحیح مسلم کتاب الشعر باب فى الشاد الاشعار وبیان الشعر الکلمة وذم الشعر: ۲۲۵۸.
[2] الطبری : ۱۹/۴۲۰.

بیانولو.او ډیره مینه اومحبت به ئې ساتلو.

**د ابو سفیان د رسول کریم ﷺ نه درې مطالبې او د هغې منظوري:-** په صحیح مسلم کښې دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې.چه ابوسفیان صخربن حرب چه کله مسلمان شو.نونبی کریم ﷺ ته ئې اوونیل.ماته درې څیزونه راکړئ.یوخو داچه زما ځوئې معاویه خپل کاتب جوړکړئ.دویم ماکافرانوته جهاد دپاره اولیږئ. او ماسره یو لښکرهم کړه.چه لکه څنګه به په کفرکښې مسلمانانوسره جنګیدم.اوس په اسلام کښې کافرانوسره جنګ اوکړم.نبی ﷺ دواړه خبرې قبول کړې.یو دریم درخواست ئې هم قبول کړې شو ([1]).پس داسې خلق ددې آیت دحکم نه په دې دویم آیت سره جدا کړې شول.دالله ذکرکه په خپلو شعرونوکښې کثرت سره کوی اوکه په بله طریقه په خپل کلام کښې، یقیناً دا د تیرو شوو ګناهونو بدله اوکفاره ده. دخپل مظلوم کیدو بدله اخلی.یعنی دکافرانو دهجو(مذمت) جواب ورکوی.([2])په خپله نبی کریم ﷺ حضرت حسان رضی الله عنه ته فرمائیلی وو.ددې کافرانو هجو اوکړه جبرئیل علیه السلام تاسره دې.([3]) حضرت کعب بن مالک رضی الله عنه شاعرچه کله د شاعرانو بدی په قرآن کښې واوریدله نونبی کریم ﷺ ته ئې عرض اوکړو.نبی ﷺ اوفرمائیل.ته دهغوی نه نهٔ یې.مؤمن خوچه څنګه خپل خان سره جهاد کوی.خپلې ژبې سره هم جهاد کوی.په الله قسم! ستاسو شعرونه خوهغوی لره د مجاهدینود غشوپه شلوی([4]).بیائې اوفرمائیل .ظالمانوته به خپل انجام هم معلوم شی.دهغوی عُذر اومعذرت به هم هیڅ په کار رانه شی.نبی کریم ﷺ فرمائی.چه دظلم نه خان ساتئ.په دې سره به دقیامت په میدان کښې په تیاروکښې پاتې شئ.([5])آیت عام دې.کهٔ شاعران وی اوکه غیرشاعران ټولوته شامل دې.

**قوله تعالی:- وَسَيَعۡلَمُ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ**

**دا ایت مبارک عام دې دې کښې شاعر او غیر شاعر ټول شامل دی:-**حضرت حسن رحمه الله د یونصرانی جنازه روانه اولیده نوهم دا آیت ئې تلاوت کړلو. هغوی چه به کله ددې آیت تلاوت کولونو دومره به ئې ژړل چه ساه به ئې بنده شوه.روم ته چه کله حضرت فضاله بن عُبید رحمه الله تشریف یوړلو.هغه وخت یوصاحب مونځ کولو.کله چه هغوی دا آیت تلاوت کړلو.نووې فرمائیل.ددې نه مراد دبیتُ الله بربادونکی دې.ونیلې شوی دی چه ددې نه مراد اهل مکه دی.داهم نقل دی چه مراد مشرکان دی.حقیقت دادې چه آیت عام دې ټولوته شامل دې.په ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی.چه زما پلارحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دخپل وفات په وخت خپل وصیت صرف په دوو کرښوکښې لیکلې وو.چه هغه داوو.بسم الله الرحمن الرحیم دا وصیت دې دابوبکربن ابی قحافه هغه وخت کله چه هغه دنیا پریښودله.کوم وخت چه کافرهم مؤمن جوړیږی.او فاجر هم توبه اوباسی.او دروغژن هم رښتیا ګڼړلې شی.زهٔ په تاسوباندې خپل خلیفه عمربن خطاب رضی الله عنه جوړوم.که هغه عدل اوکړې نو ډیره ښهٔ ده. او زما خپل ګمان هم دهغهٔ سره دادې اوکه هغه ظلم اوکړې اوځه تبدیلی اوکړی.نوزهٔ په غیب نه پوهیږم ظالمانوته به ډیره زر معلومه شی.چه کوم دتلو ځائې ته هغوی ورځی.

﴿ الحمد لله ﴾ د سورهٔ شعرا تفسیرختم شو.

........................
........................

---

[1]) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة من فضائل ابی سفیان صخر بن حرب رضی الله عنه : ۲۵۰۱.
[2]) صحیح مسلم کتاب بدء الخلق باب/ذکر الملائکة صلوات الله علیهم: ۳۲۱۳.
[3]) احمد: ۳۸۷/۶، ابن حبان: ۵۸۷۶.
[4]) احمد:۳۸۷/۶،
[5]) صحیح مسلم کتاب البر باب تحریم االظلم: ۲۵۷۸. ابن حبان: ۵۱۷۶.

| آياتونه | | سورة النمل مكية وهي ثلاث وتسعون اية وسبع ركوعات | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۹۳ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | | ۷ |

طٰسٓ ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ ۙ﴿۱﴾ هُدًى

ط . س | دا | آيتونه دقرآن دى | او دكتاب مبين (حق بيانونكى) دى | لاربنودونكې دې |

ط س دا د قرآن پاک او روښانه كتاب آيتونه دى |مومنانو دپاره

وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۙ﴿۲﴾ الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ

او زيري دې | دپاره دمومنانو | هغه (مومنان) | چې قائيموئ | مونځ | اوور كوى

هدايت او زيرې دې | هغه كوم چې دمونځ پابندى كوئ | اوزكوة وركوى | او

الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ﴿۳﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

زكات | او هغوئ | په اخرت باندې | خاص هغوئ يقين لرى | بيشكه هغه كسان | چې ايمان نۀ راوړى

په اخرت باندې پوخ يقين ساتى | كوم كسان چې په الله ﷻ او په اخرت ايمان نه راوړى

بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ اَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ ؕ﴿۴﴾

په اخرت باندې | ښائيسته كړى دى مونږ | دپاره دهغوئ | عملونه دهغوئ | پس هغوئ | سرګردانه ګرځى

نو مونږ دې خلقوته خپل (بد) عملونه ښائسته كړى دى | نو هغوئ سرګردان ګرځى

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ

دا هغه خلق دى | چې ددوئ دپاره | سختى دعذاب ده | او دوئ | په آخرت كښې |

هم دا كسان دى چې دوئ دپاره سخت عذاب مقرر شوې دې | او هم دوئ به آخرت كښې

هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ﴿۵﴾ وَاِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْاٰنَ مِنْ لَّدُنْ

هم دوئ تاوانيان دى | او بيشكه تۀ چې نې | خامخا ملاويږى تاته | دا قرآن | دطرفه

ټولو نه زيات تاوانيان وى | اوتاته داقرآن پاک د حكيم او عليم ذات د

حَكِيْمٍ عَلِيْمٍ ﴿۶﴾

دحكيم او عليم نه |

طرفنه دركولې شى |

**قوله تعالى:- طٰسٓ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ ۙ﴿۱﴾**

**ترغيب الى القران ،وصفات المؤمنين:**- حروف مقطعات كوم چه د سورتونو په شروع كښې راځى په دې باندې پوره بحث د سورة بقره په شروع كښې مونږ كړې دې.دلته ددوباره كولوضرورت نشته.قرآن كريم چه داګهلاؤ،واضحه،روښانه اوښكاره كتاب دې.داددې آياتونه دى چه دادمؤمنانودپاره هدايت او بشارت دې.خكه چه شم دوى په دې باندې ايمان راوړى.ددې اتباع كوى.دا رښتيا منى.په دې كښې چه كوم

احکام دی.په هغې باندې عمل کوی.هم داهغه خلق دی.چه مونځونه صحیح طورسره کوی.په فرضو
کښې کمې نه کوی.دغه شان فرض زکواة هم نه بندوی.اوپه آخرت باندې هم کامل یقین ساتی. د مرګ
نه پس ژوند،بدله اوسزاهم منی.جنت اودوزخ حق ګڼړی.لکه چه په بل آیت کښې دی چه ایماندارو دپاره
خوداقرآن هدایت اوشفاعت دې.اودبې ایمانه خلقوغوږونه خوکاڼړه دی.پدې ئې مالوچ ورکړې دی.
پدې کښې پرهیزګارانو دپاره خوشخبری ده او بدکارانودپاره په دې کښې ویره ده.دلته ئې هم فرمائیلی
دی چه څوك دا دروغ ګڼړی.اوقیامت راتلونکې نه منی.مونږهم هغوی پریږدو.دهغوی بدئ هغوی ته ښه
ښکاری.هم دوی زیاتیږی اوخوشحالی کوی.اوپخپله سرکشئ او ګمراهئ کښې زیاتیږی.ددوی نظرونه
او زړهٔ ألټه شوی دی. دوی ته به په دنیا اوآخرت کښې سختې سزاګانې وی.اود قیامت په ورځ به ټول
محشر والو کښې دټولونه زیات نقصان کښې هم داخلق وی.بې شکه ته اې زمونږنبی! زمونږ نه قرآن
اخلې.زه حکیم یم.د امر اونهی په حکمت باندې ښهٔ پوهیږم.علم والا یم.د وړو او غټوکارونونه ښه
خبرداریم.پس د قرآن ټول خبرونه یاالکل رښتیا اوصداقت والادی.اوددې ټول حکمونه ټول په ټوله عدل
او انصاف والادی.لکه چه فرمان دی ﴿ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ﴾

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِذْ | قَالَ مُوسَىٰ | لِأَهْلِهِ | إِنِّي | آنَسْتُ | نَارًا ۚ |
| کله چي | اووئیل موسی | کوروالو خپلو ته | چي بیشکه ما | اولیدو | وور |
| هر کله چي موسی ﷺ خپل کور والا ته اووئیل چي ما اور اولیدلو | | | | | |
| سَآتِيكُم | مِّنْهَا | بِخَبَرٍ | أَوْ آتِيكُم | بِشِهَابٍ قَبَسٍ | |
| زر به راوړم زهٔ تاسو ته | دهغه ځائي نه | څه خبر | یا به راوړم تاسو ته | لمبه لګیدلي | |
| زهٔ ستاسو دپاره دهغي نه څهٔ خبر راوړم یا به یوه بله سکروټه راوړم چي تاسو تري نه ګرمی | | | | | |
| لَعَلَّكُمْ | تَصْطَلُونَ ۝٧ | فَلَمَّا | جَاءَهَا | نُودِيَ | |
| دپاره ددي | چي تاسو تاوده شي | نو هر کله چي | راغي هغه هغي وور ته | اواز اوشو | |
| حاصله کړئ کله چي موسی ﷺ هلته اورسیدو نو اواز ورته اوشو چي کومي (فرښتي) اور | | | | | |
| أَن بُورِكَ | مَن | فِي النَّارِ | وَمَنْ | حَوْلَهَا ۚ | |
| چي برکتناك کړي شوي دي | هغه څوك | چي په دي وور کښي دي | او هغه څوك | چي چاپیره ددي دي | |
| کښي دننه دي هغه هم برکتي دي او کومي چي ددي نه ګیرچاپیره دي هغه هم مبارکي دي | | | | | |
| وَسُبْحَانَ اللَّهِ | رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝٨ | يَا مُوسَىٰ | إِنَّهُ | أَنَا اللَّهُ | |
| او پاکي ده الله لره | چي پالونکي دمخلوقاتو دي | اے موسی | شان دادي | چي زهٔ الله یم | |
| او الله پاک د ټولو مخلوقاتو پالونکي دي اے موسی یقینا هم زهٔ په حقیقت کښي د عبادت لائق یم | | | | | |
| الْعَزِيزُ | الْحَكِيمُ ۝٩ | وَأَلْقِ | عَصَاكَ ۚ | فَلَمَّا | رَآهَا |
| غالب (او) | حکمت والا یم | او اوغورزوه | همسا خپله | نو هر کله چي | اولیدله هغه همسا |
| غالب او دحکمتونو خاوند یم او ته خپله همسا اوغورزوه نو کله چي موسی ﷺ اوکتل | | | | | |
| تَهْتَزُّ | كَأَنَّهَا | جَانٌّ | وَلَّىٰ | مُدْبِرًا | وَلَمْ يُعَقِّبْ ۚ |
| چي خوزیدله | لکه چي هغه | نري مار دي | نو اوګرځیدو | شاکونکي | او وراونه ګرځیدو بیرته |
| نو هغه داسي خوزیده لکه چي ماروی نو په شا طرف ته ئي منډه کړه او وروستو ئي اونه کتل | | | | | |

يٰمُوْسٰى لَا تَخَفْ اِنِّىْ لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ ⑩

اے موسی | مهٔ یریږه | بیشکه زهٔ چې یم | نهٔ یریږئ | زما په دربار کښې | رسولان

(مونږورته آواز اوکړو چې)ائې موسی! ته مه ویریږه! زما په دبار کښې پیغمبران نه ویریږی

اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًاۢ بَعْدَ سُوْٓءٍ

مګر | هغه څوك | چې ظلم کړې وی | بیا نې | بدل کړو (عمل خپل) | په نیکئ سره | روستو دبدئ نه

البته چا چې ظلم کړې وی | بیا د بدئ په ځائې نیک کارونه کوی

فَاِنِّىْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ⑪ وَاَدْخِلْ يَدَكَ فِىْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ

نو بیشکه زهٔ | ښښونکې | مهربانه یم | او ننباسه | لاس خپل | په ګریوان خپل کښې | رااوبهٔ وځی

نوزهٔ ښښونکې مهربان یم | او ته خپل لاس ګریوان ته داخل کړه | نو بغیر د څه عیب نه به

بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ فِىْ تِسْعِ اٰيٰتٍ اِلٰى فِرْعَوْنَ

تك سپین(ځلیدونکې) | بې دڅه تکلیف (عیب) نه | په نهه | ښنو (معجزو) کښې | (دادوه ښنې) فرعون ته

تک سپین راوځی | دا په هغه نهومعجزو کښې ده | چې فرعون اودهٔ

وَقَوْمِهٖ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ⑫ فَلَمَّا

او قوم دهغه ته (دتلو دپاره) | بیشکه هغوئ | دی یو قوم | فاسقان (نافرمانه) | نو هر کله چې

دقوم دپاره دی | ځکه چې هغوئ دحد نه وړاندې تیریدونکی خلق دی | نو څه وخت

جَآءَتْهُمْ اٰيٰتُنَا مُبْصِرَةً قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ⑬

راغلې هغوئ ته | ښنې زمونږه | ښکاره | نو اووئیل هغوئ | دا جادو دې | ښکاره

چې فرعونیانو ته زمونږ روښانه معجزې راورسیدې | نو هغوئ اووئیل چې داخوښکاره جادو دې

وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا

او انکار اوکړو هغوئ | په دې ښنو | او یقین نې راغلې وو په دې | دنفسونو دهغوئ | په وجه دظلم

اودظلم او کبر په وجه نې د هغې نه انکار اوکړو | د دې باوجود چې په زړونو کښې ئې پرې یقین

وَّعُلُوًّا ؕ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ⑭

او دسرکشئ | پس اوګوره | څه رنګې وو | انجام | دفساد کونکو

راغلې وو نو ته اوګوره چې ددغې مفسدانو انجام څهٔ شو ؟ | اومونږ

**قوله تعالى:- اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِاَهْلِهٖۤ اِنِّىْۤ اٰنَسْتُ نَارًا ؕ**

**دموسی ؑ وادئی مقدس کښې ورلیدل اونبوت ملاویدل:-** الله ﷻ خپل محبوب ﷺ ته دموسی ؑ واقعه وریادوی. چه الله ﷻ هغهٔ لره څنګه بزرګ جوړکړو. اودهغهٔ نه نې کارواخستلو. اوهغهٔ ته نې زبردستې معجزې ورکړلې. او فرعون او فرعونیانوته نې خپل رسول جوړکړې اولیږلو. لیکن هغې کافرانودهغوی نه انکاراوکړو. خپل کفر اوتکبرئې پرې نخودلو. دهغوی فرمانبرداری اوتابعداری نې اونکړله. فرمانی چه

کله موسیعليه السلام خپل اهل روان کړو.او لاره ترې هیره شوه.شپه راغله اوهغه هم ډیره سخته تیارې والا وه.نوهغوی اولیدل چه دیوطرفه د اوربه شان شعله په نظر راځی.خپل اهل ته ئې اوفرمائیل.چه تاسو دلته اودریږئ.زهٔ دې رڼرا ته ورځم.کیدې شی چه هلته څوك وی چه دهغوی نه لاره معلومه شی.یازهٔ د هغه ځائې نه څه اور راوړم.چه تهٔ په هغې سره څه ګرمی حاصله کړې.هم دغه شان اوشوه چه هغوی د هغه ځائې نه یولوئې خبر راوړلو.او ډیرلوئې نورئې حاصل کړو.فرمائی چه کله هلته اورسیدلو.دا منظرئې چه اولیدلو نوحیران شو.څه ګوری چه یوه شنه ونه ده.چه دهغې نه اور چاپیره دې.شعلې ئې تیزیږی.اود ونې شین والې نورهم زیاتیږی.چه پورته ئې اوکتل نووې لیدل چه دغه نورآسمان پورې رسیدلې دې.په حقیقت کښې هغه اورنه وو.بلکه نوروو.او نورهم د﴿رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ وحده لاشريك له﴾ دې([1]) حضرت موسیعليه السلام حیران شو.اوهیڅ خبره ئې په پوهه کښې نه راتلله.چه ناځاپه یو آواز راغې.چه په دې نورکښې څوك دې.هغه پاکئ والا او بزرګئ والادې.اودهغهٔ سره چه کومې فرشتې دی هغه هم مقدس دی([2]).

**الله تعالی اودهٔ کیږی نه:-** رسول اللهﷺ فرمائی.چه الله تعالی اودهٔ کیږی نه.اونهٔ هغهٔ سره اوده کیدل مناسب دی.هغه تلې لره ښکته کوی او پورته کوی.دشپې کارونه هغهٔ طرف ته د ورځ نه مخکښې،اود ورځ کارونه دشپې نه مخکښې خیژی.دهغهٔ حجاب نوردې یا اوردې.اوکه هغه لرې شی.نودهغهٔ دمخ تجلی به هرهغه څیز اوسوزوی چه هغې ته دهغهٔ نظر رسیږی یعنی ټول کائنات.ابوعبیدرحمه الله دحدیث راوی ددې بیانولونه پس دا آیت تلاوت کړلو.دا الفاظ دابن ابی حاتم دی.اوددې اصل په صحیح مسلم کښې دې([3]).پاك دې هغه چه دټول جهان پالونکې دې.څه چه غواړی هغه کوی،په مخلوق کښې څوك هم دهغهٔ مشابه نشته.دهغهٔ دمصنوعاتونه هیڅ یوڅیزدچا په احاطه کښې نشته.هغه ډیر اوچت شان والا دې.دټول مخلوق نه جدادې.زمکه او آسمان هغهٔ لره نه شی راګیرولې . هغه احد اوصمددې.هغه دمخلوقاتو مثلیت نه پاك دې.

**قوله تعالی:-** يٰمُوسٰى اِنَّهٗ اَنَا اللّٰهُ

**موسیعليه السلام ته دالله تعالی خطاب:-** بیائې خبر ورکړو.چه پخپله الله تعالی هغهٔ سره خطاب کوی.هم هغه دا وخت کلام کوی چه په ټولویاندې غالب دې.ټول دهغهٔ ماتحت اودحکم لاندې دی.هغه په خپلو اقوالو او افعالوکښې حکمت والادې.ددې نه پس اللهﷻ حکم ورکړوچه اې موسیعليه السلام! چه خپله همسا دخپل لاس نه زمکه باندې اوغورزوه.چه ته ئې په خپلوسترګو اووینې.چه الله تعالی فاعل مختاردې.هغه په هرڅیز باندې قادردې.موسیعليه السلام ارشاد اوریدلوسره همسا په زمکه اوغورزوله.په دغه وخت یوحرکت کونکې مار جوړشو.اوډیر لوئې بدن والا مار، ویرونکې شکل والا،په دې غټ والی سره تیزتیز تلونکې.هغې لره ژوندې ګرځیدونکې زیردسته اژدها لیدلوسره حضرت موسیعليه السلام اویریدلو.د﴿جَآنٌّ﴾ لفظ په قرآن کریم کښې دې.دا یوقسم ماردې چه دا ډیرپه تیزئ سره حرکت کونکې اوچك لګونکې وی.

په یوحدیث کښې دی چه رسول کریمﷺ په کورونوکښې د اوسیدونکو داسې مارانو قتلولونه منع فرمائیلې ده([4])غرض داچه حضرت موسیعليه السلام دهغې په لیدلو اویریدلو.اود ویرې نه ایسارنه شو.اومخ ئې واوړلو،شائې کړه اوتښتیدلو.دومره اویریدلوچه په شائې هم اونه کتل.دغه وخت الله ﷻآواز ورکړو چه اې موسیاویریږه مهٔ، زهٔ تالره خپل خوښ شوې رسول اوعزت والا پیغمبر جوړول غواړم.ددې نه پس

---

[1]) الطبری : ۱۹/۴۲۸.،

[2]) الطبری : ۱۹/۴۲۹.

[3]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب فی قوله علیه السلام ان الله لا ینام : ۱۷۹.

[4]) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب خیر مال المسلم غنم یتبع بها شعف الجبال......: ۳۳۱۳.

استثناء منقطع ده.پدې ایت کښې انسان دپاره ډیرلوئې عبرت دې.چه چاهم څه دګناه کارکړې وي. بیا هغه په هغې باندې پښیمانه شي.توبه اوباسي.الله ﷻ ته رجوع اوکړي.نوالله تعالی داسې توبه قبلوی.
لکه چه په بل آیت کښې دی ﴿وَاِنِّیْ لَغَفَّارٌ لِّمَنْ تَابَ﴾ الخ،چه څوك هم توبه اوباسی اوایمان راوړی اونیك عمل اوکړی اوپه نیغه لار روان شی.زۀ دهغۀ ګناهونه معاف کونکې یم.او فرمان دې.﴿وَمَنْ یَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ یَظْلِمْ نَفْسَهٗ﴾ الخ څوك چه دیوې ګناه جرم اوکړی.یاڅه ګناه اوکړی.بیا دالله تعالی نه بخښنه اوغواړی نو هغه به یقینًا الله تعالی بخښونکې او مهربانه بیاموومی.
ددې مضمون آیاتونه دالله تعالی په کلام کښې نورهم ډیرزیات دی.دهمسا نه د مار جوړیدلو معجزې سره کلیم الله ته بله معجزه ورکولې شی.چه تۀ کله هم په خپل ګریوان کښې لاس دننه کړې او رابهرنې کړې.نوهغه به د سپوږمۍ په شان ځلیدونکې راوځی.دا معجزې دهغه نهه معجزو څینې دی.چه په هغې سره به زۀ ستا په وخت وخت سره تائید کوم.چه فاسق فرعون او دهغۀ د فاسق قوم په زړونوکښې ستا د نبوت ثبوت ځائې اونیسی. دا نهه معجزې هغه وې.دکوم ذکرچه ﴿وَلَقَدْ اٰتَیْنَا مُوْسٰی تِسْعَ اٰیٰتٍۭ بَیِّنٰتٍ﴾ الخ کښې دې.ددې پوره تفسیرهم ددې آیت لاندې تیرشوې دې.

**قوله تعالی:- فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ اٰیٰتُنَا مُبْصِرَةً**

**د فرعونیانو ضد اود معجزاتو نه انکار:-** کله چه داواضحه،ښکاره صفااوکهلاو معجزې فرعونیانوته اوخودلې شوې.نوهغوی په خپل ضدکښې راغلل وې ونیل.داخوجادو دې.مونږخپل جادوګرراغواړو. مقابله اوکړه. په دغه مقابله کښې الله ﷻ حق غالب کړو.اودا ټول خلق مغلوب شول.خوبیا ئې هم او نه منله. اګرچه په زړونوکښې ددې حقانیت ناست وو.لیکن ظاهری مقابله ئې پرې نخودله.صرف د ظلم او تکبر په بنیاد باندې ئې حق دروغ ګنړلو.اوس ته اوګوره چه ددې فاسقانو انجام څومره حیرت ناك او څومره عبرتناك شو.په یوځل ټول په ټوله دریاب کښې غرق شول.پس اې دنبی آخرالزمان ﷺ دروغژن ګنړونکوا تاسودې نبی ﷺ لره دروغ ګنړلوسره اطمینان سره مه کینئ.څکه چه داخودموسی ﷺ نه هم اشرف او افضل دې.ددوی دلیلونه اومعجزې هم دهغوی ددلیلونواومعجزونه لوئې دی.پخپله ستاوجود،ستا عادتونه اواخلاق،اودتیروشوؤکتابونوادتیروشوؤنبیانوستاباره کښې زیری دهغوی نه دالله وعده اولوظ باندې ټول څیزونه په تاکښې دی.پس ستاپه نه منلودې دوی نه مطمئن کیږی او بې ویرې کیږی دې نه.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ اٰتَیْنَا | دَاوٗدَ وَسُلَیْمٰنَ | عِلْمًا | وَقَالَا | اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ | |
| اوپه تحقیق سره ورکړې وۀ مونږه | داود او سلیمان ته | علم | او اوونیل دواړو | چې ثناء ده الله لره | |
| داؤد ﷺ او سلیمان ﷺ ته ډیر لوئې علم ورکړو او هغوئ دواړو اوونیل چې ټول تعریفونه | | | | | |
| اَلَّذِیْ | فَضَّلَنَا | عَلٰی کَثِیْرٍ | مِّنْ عِبَادِهِ | الْمُؤْمِنِیْنَ ۞ | |
| هغه الله | چې فضیلت ئې راکړو مونږ لره | په ډیرو باندې | دبندګانو خپلو | مومنانونه | |
| الله ﷻ لره دی چې مونږ ته ئې په خپلو ډیرو مومنانو بندګانو فضیلت راکړې دې | | | | | |
| وَوَرِثَ | سُلَیْمٰنُ | دَاوٗدَ | وَقَالَ | یٰٓاَیُّهَا النَّاسُ | عُلِّمْنَا |
| او وارث شو | سلیمان | دداود | او اوونیل هغه | اے خلقو | ښودلې شوی دی مونږ ته |
| او سلیمان ﷺ د داود ﷺ وارث شو او دائې اوونیل چې ائې خلقو ! مونږ ته د مارغانو | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَنْطِقَ الطَّيْرِ | وَأُوْتِيْنَا | مِنْ كُلِّ شَيْءٍ | إِنَّ هٰذَا | لَهُوَ | |

خبرې (ژبې) دمارغانو | او راکړې شوې دی مونږ ته | هر قسم څیزونه | بیشکه دا | خامخا هم دا

ژبه خودلې شوې ده| اومونږ ته هرقسم څیزونه راکړې شوې دی| واقعي داهغه ښکاره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْفَضْلُ الْمُبِيْنُ ⑯ | وَحُشِرَ | لِسُلَيْمٰنَ | جُنُوْدُهٗ | مِنَ الْجِنِّ |

فضل ښکاره دې | او راجمع کړې شوې | دپاره سلیمان | لښکرې دهغه | دپیریانو نه

فضل دې |اوسیلمان دپاره د پیریانو ، بنیادمو او مارغانو لښکرې راجمع کړې شوې

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْإِنْسِ | وَالطَّيْرِ فَهُمْ | يُوْزَعُوْنَ ⑰ | حَتّٰى |

او دانسانانونه |او دمارغانونه | پس هغه لښکرې به په حفاظت سره ساتلې کیدې |تردې(چې یوځل)

او دوئ به (دانتظام دپاره ، ځائې په ځائې اودرولې راودرولې شوا تردې چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِذَآ أَتَوْا | عَلٰى وَادِ النَّمْلِ | قَالَتْ نَمْلَةٌ | يٰٓأَيُّهَا النَّمْلُ | |

کله | ورغلل هغوئ | په میدان دمیږو باندې | نو اووئیل یو میږی | اے میږو

هغوئ دمیږو یو میدان ته اورسیدل | نو یو میږئ اووئیل چې ائې میږو !

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ادْخُلُوْا | مَسٰكِنَكُمْ | لَا يَحْطِمَنَّكُمْ | سُلَيْمٰنُ | وَجُنُوْدُهٗ |

ننوځئ | کورونو (سوړو) خپلو ته | چې چخړې نهٔ کړی تاسو | سلیمان | او لښکرې دهغه

تاسوخپلو خپلو ځایونو ته ننوځئ | هسې نه سلیمان ﷺ او دهغه لښکرې مو په بې

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَهُمْ | لَا يَشْعُرُوْنَ ⑱ | فَتَبَسَّمَ | ضَاحِكًا |

او حال داچې هغوئ | به خبر هم نهٔ وی | نو موسکې شو سلیمان | چې خندیدونکې وو

خبرئ کښې چخړې نه کړی | نو سلیمان ﷺ دهغې په خبره اوخندل | اودائې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ قَوْلِهَا | وَقَالَ | رَبِّ | أَوْزِعْنِيْٓ | أَنْ أَشْكُرَ |

دوینا دهغه میږی نه | اووې وئیل | اے ربه زما | طاقت را کړې ماله | چې زهٔ شکر ادا کړم

اووئیل چې ائې زما ربه ! ماهمیشه په داسې حال کښې اوساته| چې ستاد هغې انعامونو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نِعْمَتَكَ | الَّتِيْٓ | أَنْعَمْتَ | عَلَيَّ | وَعَلٰى وَالِدَيَّ |

دنعمت (احسان) ستا | هغه | چې کړې دې تا | په مابانديَ| او په مور اوپلار زما باندې

شکر ادا کړم | چې تا مابانديَ او زما په مور پلار باندې کړی دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَنْ أَعْمَلَ | صَالِحًا | تَرْضٰىهُ | وَأَدْخِلْنِيْ | بِرَحْمَتِكَ |

او چې عمل اوکړم زهٔ | نیک | داسې چې تهٔ خوښوې هغه | او داخل کړه ما | په رحمت خپل سره

او چې داسې نیکئ اوکړم| چې ته پرې خوشحاله شې|او ماپخپل رحمت سره په خپلو

| | |
|---|---|
| فِیْ عِبَادِكَ | الصّٰلِحِیْنَ |
| په بندګانو خپلو کښې اچې صالحان دي | |
| نیکانو بندګانو کښې شامل کړه | |

قوله تعالى:- وَلَقَدْ اٰتَیْنَا دَاوٗدَ وَسُلَیْمٰنَ عِلْمًا

**په حضرت داؤد ﷺ او حضرت ﷺ باندې دالله تعالى احسانات**:پدې آیاتونو کښې الله تعالى دهغه نعمتونو خبر ورکوی.کوم چه هغه په خپل بنده حضرت سلیمان اوحضرت داؤدعلیهم السلام باندې انعامونه فرمائیلی وو.چه څنګه ئې د دوارو جهانونو دولتونه ورکړل.ددې نعمتونوسره ئې دخپل شکر ادا کولو توفیق هم ورکړې وو.دوارو پلار اوځوی به هروخت دالله تعالى په نعمتونو باندې دهغهٔ شکراداکولو.د هغهٔ تعریفونه به ئې بیانول.حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله لیکلی دی.چه کوم بنده ته الله تعالى کوم نعمتونه ورکړی اوپه هغې باندې هغه دالله تعالى حمد اوکړی.نودهغهٔ حمد ددې نعمتونو نه ډیر افضل دی.اوګورئ اګرچه په کتابُ الله کښې دا نکته موجود ده.بیائې هم دا آیت اولیکلو.اووې لیکل چه دې دوارو پیغمبرانوته کوم نعمت ورکړې شوې وو.دهغې نه افضل به بل کوم نعمت وی.دحضرت داؤد ﷺ د وارث حضرت سلیمان ﷺ نوم به هم نه راتلې.ځکه چه دحضرت داؤد ﷺ سل بیبیانې وې.د انبیاؤ د مال میراث نه تقسیمږی.لکه چه دسید الانبیاء ﷺ ارشاد دې.چه مونږ دانبیاؤ جماعت یو.زمونږ میراث نه تقسیمږی.مونږچه څه پریږدو.هغه صدقه دی[1] سلیمان ﷺ دالله تعالى نعمتونه یادوی.فرمائی دا پوره ملك اودا زبردست طاقت چه انسانان، جنات، مارغان ټول ئې دفرمان تابع دی.د مارغانوپه ژبه هم پوهیږی.داخاص دالله تعالى فضل وکرم دې.چه داپه هیڅ انسان باندې نه دې شوې.

قوله تعالى:- عُلِّمْنَا مَنْطِقَ الطَّیْرِ

**د مارغانود انسانانو پشان خبرې کول بې بنیاده خبره ده**:-بعضې جاهلانو وئیلی دی چه هغه وخت به مارغانوهم دانسانانوپه شان خبرې کولې.داخالص ددوی بې علمی ده.پوهه شئ که چرې واقعی هم دا خبره وې نوبیا په دې کښې دحضرت سلیمان ﷺ څه خصوصیت وو؟ چه دې لره هغوی په دې فخرسره بیانوی.چه مونږته دمارغانو ژبه اوښودلې شوه.بیاخوبه هرسړی دمارغانو په خبروپوهیدلې.اود حضرت سلیمان ﷺ خصوصیت به ختم شوې وې.داخالص غلط دی.د مارغانوپه ژبه به پوهیدلو.ورسره دانعمت هم حاصل شوې وو.چه په یوبادشاهت کښې دکومو څیزونو ضرورت وی.ټول حضرت سلیمان ﷺ ته قدرت ورکړی وو.داپه هغوی باندې دالله تعالى ښکاره احسان وو.

**د داؤد ﷺ د غیرت او مرګ بیان**:-په مسند امام احمد رحمه الله کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی حضرت داؤد ﷺ ډیر غیرت والاوو.کله چه به هغوی دکورنه بهر وتل.نو دروازې به ئې بندولې.بیابه هیچاته دننه دتلو اجازت نه وو.یوځل هغوی دغه شان بهرته تلی وو.لږوخت پس د یوې بی بی صاحبې نظر پورته شو.نووې کتل چه دکورپه مینځ کښې یوصاحب ولاړدې.حیرانه شوه، او نوروته ئې اوښودلو.خپل مینځ کښې ټولو اووئیل.دې دکوم ځائې نه راغې؟ دروازې بند دی.دې داخل څنګه شو؟ په الله تعالى قسم! حضرت داؤد ﷺ هم راغې.هغوی هم هغه ولاړ اولیدلو. او تپوس ئې ترې اوکړو.چه ته څوك یې؟ هغه جواب ورکړو.زهٔ هغه چالره چه دروازه اوځوك نه شی منع کولې،څوك چه د لوئې نه لوئې هیڅ پرواه نهٔ کوی.حضرت داؤد ﷺ پوهه شو. اووې فرمائیل.مرحبا (په خیر راغلې) دې وی مرحبا دې وی ته ملك الموت یې.دغه وخت ملك الموت دهغهٔ روح قبض کړو.نمر راوختلو.اوپه هغهٔ باندې دهوپ راغې. نو حضرت سلیمان ﷺ مارغانوته حکم ورکړو.چه هغوی په حضرت داؤد ﷺ باندې سورې جوړکړی.

---

[1] صحیح بخاری کتاب فرض الخمس باب فرض الخمس: ۳۰۹٤. صحیح مسلم: ۱۷۵۷.

هغوی خپلې وزرې کهلاو کړلې.داسې ګنړ سورې ئې جوړکړه.چه په زمکه باندې تیارهٔ شان جوړه شوه.بیانې حکم ورکړو.چه په یوه یوه باندې خپلې ټولې وزرې راټولې کړئ.حضرت ابوهریره رضي الله عنه تپوس اوکړو.اې دالله رسوله ﷺ مارغانو بیا داڅنګه راټولې کړې؟ نبی ﷺ اوفرمائیل.خپل لاسونه ئې راټول کړل وې خودل چه داسې.په هغهٔ باندې دغه ورځ سور رنګ مارغان غالب راغلي وو(۱).

**قوله تعالى:- حَتّٰى إِذَآ أَتَوْا عَلٰى وَادِ النَّمْلِ**

**د سلیمان علیه السلام په میږو تیریدل او د میږی خپلو میږو ته هدایت:-** دحضرت سلیمان علیه السلام لښکرجمع شو.چه په هغې کښې انسانان،جنات مارغان ټول وو.دهغوی په سرونو به اوسیدل.په ګرمئ کښې به ئې پرې سورې کول.ټول په خپله خپله مرتبه باندې قائم وو.دچا چه کوم ځائې مقرر وو.هلته اوسیدل.کله چه دې لښکرو سره حضرت سلیمان علیه السلام روان شو.په یوځنګل تیریدل.چه هلته یو میږې نورو میږوته اوونیل.چه لاړشئ خپلو خپلو سوړوته ننوځئ.چرته داسې اونه شي چه د سلیمان علیه السلام لښکر روان وی.او تاسو دځپو لاندې کړي.اوهغوی ته پته هم نه وی.حضرت حسن رحمه الله فرمائی.چه ددغه میږی نوم هرس وو.داد بنو شیصان قبیلې نه وو.ګوډهم وو.دلیوهٔ قدکښې وو.هغهٔ ته ویره شوه.چه دوی ټول به دځپو لاندې راشی.او چخړی به شی.په دې اوریدوسره حضرت سلیمان علیه السلام مسکې شو.وې خندل.اوهم دغه وخت ئې دالله تعالى نه دعا اوغوښتله.چه اې الله! ماته دخپلو هغې نعمتونو شکریه اداکولو الهام اوکړې.کوم انعامونه چه تاپه ماکړی دی.مثلاً د مارغانو اوځناورو ژبه ښودل وغیره، اوهغه نعمتونه کوم چه تا زما په موروپلارباندې کړی دی.چه هغوی مسلمانان مؤمنان شول وغیره،اوماته دې دنیك عمل توفیق راکړو.چه په هغې سره ته خوشحاله شوې.اوکله چه زما مرګ راشی نوما په خپلو نیکوبندګانو او اوچتو ملګروکښې ملاوکړې.کوم چه ستا دوستان دی.دمفسرینو قول دې.چه اصل کښې لفظ د ذباب وی یعنی د مچ برابر،اود کاتب نه غلطئ سره ذیاب لیکلې شوې وی یعنی لیوهٔ.حضرت سلیمان علیه السلام چونکه دځناورو په خبرو پوهیدلو.نوپه دې خبره هم پوهه شو.اوبې اختیاره خندا ورغله.

په ابن ابی حاتم کښې دی چه یوځل حضرت سلیمان علیه السلام استسقاء دپاره اووتلو.نو وې لیدل چه یو میږې الټه ملاست دې.خپلې خپې ئې آسمان طرف ته اوچتې کړی دی دعا کوی.چه اې الله! مونږهم ستا مخلوق یو.د اوبو ورولو محتاج مونږهم یو.که باران اونه شو. نو مونږبه هلاك شو.د میږی دا دعائې چه واوریدله.نوهغوی په خلقوکښې اعلان اوکړو.چه واپس شئ.دبل چا په دعا سره تاسوته اوبه درکړې شوې.نبی کریم ﷺ فرمائی.چه په نبیانو کښې په یونبی یومیږی چك اولګولو.هغوی د میږیانو په سوړه کښې د اورلګولوحکم ورکړو.دغه وخت دالله تعالى دطرفه وحی راغله.چه اې پیغمبرا صرف د یومیږی په چك لګولوباندې تا یوه لویه ډله چه هغوی زما تسبیح ونیلې.هلاك دې کړل.که تا خامخا بدله اخستل غوښتل،نوهم دهغې نه به دې اخستې وې.(۲)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَتَفَقَّدَ | الطَّيْرَ | فَقَالَ | مَا لِيَ | |
| اولټول اوکړل هغهٔ | د مارغانو | نووې ونیل | څه وجه ده ماله | |
| او سلیمان علیه السلام | د مارغانو حاضري واخسته | نو وې ونیل | | |
| لَآ أَرَى | الْهُدْهُدَ | أَمْ كَانَ | مِنَ الْغَآئِبِينَ | لَأُعَذِّبَنَّهُ |
| چې نهٔ وینم زهٔ | هدهد (مارغه) | او که دې هغه | دغائب شوؤ نه | زهٔ به خامخا سزا ورکوم هغه له |
| چې داڅه وجه ده چې زه هدهد نه وینم | | یا هغه غائب شوې دې؟ | | زهٔ به هغه ته ډیره سخته |

(۱) احمد: ۴۱۹/۲، وسنده ضعیف،
(۲) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب اذا وقع الذباب فی شراب احدکم ....: ۳۳۱۹. صحیح مسلم: ۲۲۴۱.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَذَابًا شَدِيدًا | أَوْ لَأَاذْبَحَنَّهٗ | أَوْ لَيَأْتِيَنِّيْ | بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ﴿۲۱﴾ | |
| سزا سخته | يا به خامخا ذبح كوم هغه | يا به راوړي ماته | دليل ښكاره (مناسبه وجه) | |
| سزا ورکړم \| يا به ئې حلال کړم \|او يا به ماته (دخپلې غيرحاضرئ) کلک دليل پيش کړي | | | | |

**قوله تعالى:-وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ**

**د سليمان ﷺ دمارغانو حاضرى اخستل:** هُدهُد (ملاچرچك) دسليمان ﷺ په فوج کښې دمهندس کار کولو هغهٔ به خودل چه اوبه چرته دي؟ په زمکه کښې دننه اوبه به هغهٔ ته داسې په نظر راتلې لکه څنګه چه د زمکې پورته څيزونه خلقوته په نظر راځي.کله چه به سليمان ﷺ په ځنګل کښې وو.دهغهٔ نه به ئې تپوس کولوچه اوبه چرته دي؟هغهٔ به خودل چه فلانې ځائې کښې دي دومره لاندې دي،دومره دي وغيره.

حضرت سليمان ﷺ به هغه وخت جناتوته حکم ورکولو.اوکوهي به ئې کنستلو. يوه ورځ دغه شان په ځنګل کښې وو.دمارغانوحاضرى ئې واخستله.چه د اوبوتلاش کولوحکم ورکړي.اتفاق سره هغه موجودنه وو.په دې باندې هغوى اوفرمائيل.نن هُدهُد په نظرنه راځي.آيا په مارغانوکښې چرته پټ شو چه ماته په نظرنه راځي يا په واقع کښې هغه حاضرنه دې؟

**ديوخارجي اعتراض او د ابن عباس ﷺ جواب:**-يوځل دحضرت ابن عباس ﷺ نه په دې تفسير اوريدلوسره نافع بن ازرق خارجي اعتراض کړې وو.دې بکواسى به هروخت دحضرت عبدالله ﷺ په خبروباندې بې ځايه اعتراض کولو.دې ونيل نن خوتا اوبائيله.حضرت عبدالله ﷺ اوفرمائيل ولې؟ هغهٔ اوونيل تاسوچه دا فرمايئ چه هدهد په زمکه کښې لاندې اوبه وينې.داځنګه صحيح کيدې شي. حالانکه چه يوماشوم جال خورکړي په خاوره ئې پټ کړي.دانه واچوي هدهُد ښکارکوى.که هغه په زمکه کښې دننه اوبه وينې.نود زمکې دپاسه جال هغهٔ ته ولې په نظرنه راځي.هغوى اوفرمائيل.کچرې زما داخيال نه وې چه ته به دااوګنړې چه ابن عباس ﷺ لاجوابه شو.نوماته دجواب ضرورت نه وو.واوره! کله چه قضا راشي سترګې ړندې شي اوعقل لاړشي.نافع لاجوابه شو.اووې ونيل په الله ﷻ قسم!اوس به زهٔ په تاباندې اعتراض نه کوم.(¹)

**يوه حيران کن واقعه:**-حضرت عبدالله برزي ﷫ يو ولى الله سړې وو.د ګل او زيارت روژه به ئې پابندئ سره نيوله.اتيا کاله عمرئې وو.په يوه سترګه کاڼړاوو.سليمان بن زيد دهغهٔ نه دسترګې تللو سبب معلوم کړو.نوهغهٔ ددې ونيلونه انکاراوکړو.دې هم وړسې اولګيده.مياشتې تيرې شوې.نه به ورته هغه ښودل نه به دهٔ تپوس پريخودلو.آخرتنګ شو.وې فرمائيل واوره! دوه خراسان والا زما خواته برزه کښې چه دا دمشق سره يوښاردې راغلل.اوماته ئې اوونيل.چه زهٔ هغوى د برزې وادئ ته بوځم.ماهغوى هلته بوتلل.انګيټئ ئې راويستلې.عود ئې راويستل او سوزول ئې شروع کړل.تردې چه ټوله وادى خوشبوداره شوه.اود هرطرفه ماران راتلل شروع شو.ليکن هغوى بې پرواهئ سره ناست وو.هيڅ يومار طرف ته ئې توجهنه کوله لږوخت پس يومارراغې.چه دلاس برابروو.اودهغهٔ سترګې د سرو زروپه شان ړڼيدلې.دوى ډير خوشحاله شول.اووې ونيل.دالله ﷻ شکردې چه زمونږ دټول کال محنت په ځائې شو هغوى دغه ماراوخستلودهغهٔ په سترګوکښې ئې سلائى راښکله بيائې خپلو سترګوکښې هغه سلائى راښکله .ما هغوى ته اوونيل.چه زما په سترګوکښې هم دا سلائى راکاږئ.هغوى انکار اوکړو.ما هغوى ته ډيرمنت اوکړو.مشکل سره هغوى راضى شول.او زما په ښئ سترګه کښې ئې هغه سلائى راښکله. اوس چه ما اوکتل نوزمکه ماته د يوې شيشې پشان معلومه شوه.لکه څنګه چه پورته څيزونه په نظر راتلل.دغه شان مې په زمکه کښې دننه څيزونه هم ليدل.هغوى ماته اوونيل.چه ښه اوس ته مونږسره لږ لرې

(¹) حاکم : ٤٠٥/٢،

لاړشه.مامنظورکړله.هغوی خبرې کولې اوزۀ ئې دخان سره بوتلم.کله چه زۀ دکلی نه ډیرلرې اووتلم.نودواړوزۀ ددواړوطرف نه اونیولم.اویوکس خپلې ګوتې سره زما سترګه ویستله.اووې غورزوله. او زۀ دغه شان ترلې شوې هلته اوغورزولم،هغوی دواړه چرته لاړل.اتفاق سره هلته یوه قافله تیریدله. او هغوی زۀ په دې حالت کښې اولیدم.په مانې ترس اوخوړلو،د قید اوترلونه ئې آزادکړم.او راغلم.دا زما د سترګې تللو قصه ده.(ابن عساکر)

**قوله تعالى:-لَأُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا شَدِيدًا**

**د سلیمان ﷺ د هدهد باره کښې تنبیه:-** دحضرت سلیمانﷺ ددې هُدهُد نوم عنبروو.هغوی فرمانی.چه که په رښتیاهغه غیرحاضردې.نوزۀ به هغه ته سخته سزاورکړم.دهغۀ وزرې به اوباسم.اوهغه به اوغورزوم چه چینجی مینجی ئې اوخوری.یابه ئې زه حلال کړم.یا داچه هغه دخپلې غیرحاضرئ معقوله وجه بیان کړی.په دې کښې هُدهُد راغې.ځناوروهغۀ ته خبر ورکړو.چه نن ستا خیرنشته.بادشاه سلامت وعده کړې ده.چه هغه به تا وژنی.هغۀ اوونیل دا بیان کړئ چه دهغۀ الفاظ څه وو؟ هغوی بیان کړل.نوخوشحاله شو اووې ونیل.بیا خوبه زۀ بچ شم.حضرت مجاهدﷺ فرمانی.چه دهغۀ ددې بچ کیدلو وجه دهغۀ خپلې مورسره سلوک وو.

| |
|---|
| فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ فَقَالَ أَحَطتُّ بِمَا |
| پس وخت تیر کړو هغه \| ډیر نۀ (بلکه زر راغې) \| نو وې ونیل \| چی احاطه اوکړه ما \| په هغه څیز |
| نولږ ساعت تیر نه وو چې هغه راغلو\| نو دائې اووئیل چې ما یو داسې خبره معلومه کړې ده |
| لَمْ تُحِطْ بِهِ وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَقِينٍ﴿٢٢﴾ |
| چې نۀ ده احاطه کړې تا \| په هغې باندې\| او راغلې یم زۀ تاته \| دسبانه \| دخبر یقینی سره |
| چې تاسوته هم نه ده معلومه \|اوما درته دسبا (دقبیلې) نه یو یقینی خبر راوړې دې |
| إِنِّي وَجَدتُّ امْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ |
| بیشکه زۀ چې یم \| او موندله ما \| یوه ښځه \|چی بادشاهی (حکمرانی) کوی دهغوئ |
| ما یوه ښځه اولیده چې په هغوئ باندې حکومت کوی \|اوهغې ته |
| وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ﴿٢٣﴾ وَجَدتُّهَا |
| او ورکړې شوی دې هغې ته \| دهر څیزنه \|او هغې لره \| تخت لوئ دې \| ما اوموندله هغه |
| هر قسم اسباب ورکړې شوی دی \|اودهغې(دناستې) تخت ډیر لوئې دې \| ما هغه او |
| وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ اللَّهِ وَزَيَّنَ |
| او قوم دهغې \|چی سجدې کوی \| نمر ته \| په ځانې دالله \|او ښائیسته ښکاره کړل |
| دهغې قوم اولیدو \|اچې دالله ﷻ نه بغیر نمر ته سجدې کوی\| اوشیطان |
| لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيلِ فَهُمْ |
| هغوئ ته شیطان \| عملونه دهغوئ \|نو منع ئې کړل هغوئ \| دلارې نه \|پس هغوئ \| |
| هغوی ته داعملونه ښائسته کړې دی \| نودسمې لارې نه ئې منع کړی دی \| نو هغوی اوس |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا يَهْتَدُوْنَ۝ | اَلَّا يَسْجُدُوْا | لِلّٰهِ | الَّذِيْ | يُخْرِجُ | الْخَبْءَ |
| نيغه لار نۀ مومي\| | ولې نۀ کوي سجده \| | الله ته \| | هغه الله ته\| | چې رااوباسي \| | پټ څيزونه \| |
| په نيغه لار نه روانيږي\| هغه داچې الله ﷻ ته سجدې نه کوي اچې داسمان او | | | | | |
| فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَيَعْلَمُ | مَا | تُخْفُوْنَ | |
| په اسمانونو کښې \| | او په زمکه کښې \| | او معلوم دی هغه ته \| | هر هغه څه \| | چې تاسو ئې پټوئ \| | |
| زمکې پټ څيزونه بهر راوباسي \|اوڅه چې تاسو پټوئ او څه چې ښکاره کوئې \| په | | | | | |
| وَمَا | تُعْلِنُوْنَ۝ | اَللّٰهُ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ |
| او هغه څه \| | چې تاسو ئې ښکاره کوئ \| | الله چې دې \| | نشته دې لائق دعبادت \| | مګر \| | هغه |
| هغې ټولو خبر دې\|(واورئې) هم الله ﷻ هغه ذات دې دکوم نه سوا چې بل معبود نشته دې | | | | | |
| رَبُّ الْعَرْشِ | الْعَظِيْمِ۝ | | | | |
| چې رب دې \| | دعرش \| | لوئ \| | | | |
| دعرش عظيم رب دې \| | | | | | |

**قوله تعالى:- فَقَالَ اَحَطْتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهٖ**

**دهدهد ملکه سبا متعلق اطلاع ورکول:-** دهُدهُد دغيرحاضرئ لړشان وخت تيرشوې وو.چه هغه راغې.هغۀ اووئيل اې دالله نبی! دکومې خبرې چه تاته خبرهم نشته ماد هغې يو نوې خبر راوړلې اوتاته حاضرشوې يم.زه دسبانه راغلې يم.اويوخ يقينی خبرمې راوړلې دې.داسبا حميروو چه ديمن بادشاهان وو.يوې ښځې دهغوی بادشاهت کولو.دهغې نوم بلقيس بنت شراحيل وو.داد سبا ملکه وه [1].قتادهؒ فرمائي چه ددې مور جنۍ ښځه وه.دهغې دخپو شاته حصه دخاروی د نوک په شان وه.

په بل روايت کښې دی چه دهغې دمورنوم بلته وو.ابن جريجؒ فرمائي چه دهغې د پلارنوم ذی شرخ وو.اودمورنوم ئې بلتعه وو.په لکهونودهغې لښکرې وې.دهغوی بادشاهی کونکې يوه ښځه ما بيا مونډله.دهغې مشير او وزيران درې سوه دولس سړي وو.په هغوی کښې دهريو ماتحت دولس زره جماعت وو.دهغې د زمکې نوم مارب دې.داد صنعاء نه درې ميله فاصله باندې دې.هم دا قول قياس ته نزدې دې.(ددې اکثرحصه د يمن په ملکيت کښې دې.والله اعلم)

**قوله تعالى:- وَاُوْتِيَتْ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ وَّلَهَا عَرْشٌ عَظِيْمٌ۝**

**د بلقيس تخت او سازوسامان:-** دنياوی ضروری هرقسم اسباب هغې ته ملاودې.دهغې ډيرښانسته تخت دې.چه په هغې باندې هغه ناسته کوی.د سرو زرونه جوړدې.اودجواهراتو نه ډک دی اود مرواريد کاريګری په هغې باندې شوې ده.دا اتيا لاسه اوچت وو،اوڅلويښت لاسه پلن وو.شپږسوه ښځې به هر وخت دهغې په خدمت کښې تيارې ولاړې وې.دهغې خاص دفترچه په هغې کښې دا تخت وو.ډير لوئې محل وو.ډير اوچت،کُهلاو، فراخه پوخ، مضبوط اوصفاوو.چه دهغې په مشرقی حصه کښې درې سوه شپيته روشندانه وو.او دغومره په مغربی حصه کښې هم وو. هغه ئې په داسې طريقه جوړکړی وو.چه روزانه به نمرپه يو روشندان راوتلو.اوهم دهغې مقابل روشندان کښې به پريوتلو.دربار والويه سحر او

---

[1] الدرالمنثور: ۳۵۱/۶.

مانېام هغې ته سجده کوله.غټان او مشران ، دشاهي محل استوګن ټول افتاب پرست وو.دالله تعالی عبادت کونکې په هغوی کښې يوهم نه وو.شيطان ګناهونه هغوی ته ښه ښکاره کړی وو.اوهغوی نې بې لارې کړی وو.اوپه نيغه لاره هغوی نه راتلل.نيغه لاره داده چه صرف دالله تعالی ذات دسجدې لائق اومنلې شي.نمر اوسپوږمۍ او ستوری اونه ګڼل شي.لکه څنګه چه قرآن کښې فرمان دی.چه شپه ورځ،نمرسپوږمۍ ټول دالله ﷻ دقدرت نخښې دي.تاسوله نمرسپوږمۍ ته سجده کول پکارنه دی.سجده صرف هغې الله ﷻ ته کول پکاردی.چه هغه ددې ټولوخالق دې.ترآخره پورې،د ﴿أَلَّا يَسْجُدُوا﴾يوقراءت ﴿أَلَا يَسْجُدُوا﴾هم دې.د﴿يَا﴾ نه پس منادی محذوف ده.يعني اې زما قومه! خبردار سجده به صرف دالله تعالی کوئ.چه هغه دآسمان اوزمکې دهرېوېټ خيزنه خبرداردې.د﴿الْخَبْءَ﴾ تفسير اوبو، باران اوپيداوار سره هم شوې دې.کيدې شي چه دهدهد په دې کښې داصفت وو،هم دا مرادوی.او ستا پټ اوښکاره کار باندې هم هغه پوهيږي.ښکاره اوپټه خبره هغهٔ ته يوشان ده.هم هغه يواځې حق معبود دې.هم هغه د عرش عظيم رب دې.چه دهغهٔ نه لوئې هيڅ څيزنشته.چونکه هُدهُد خيرطرف ته رابلونکې،دالله تعالی د عبادت حکم ورکونکې،دهغهٔ نه سوا دغير سجدې نه منع کونکې وو.په دې وجه دهغهٔ دقتل ممانعت اوکړې شو.په مسنداحمد ،ابوداؤد ،ابن ماجه کښې دی چه نبي ﷺ دڅلورو ځناورو دقتل نه منع فرمائيلې ده.د ميږی،د شهدو دمچۍ،د هُدهُد او صرد. (١)

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ | سَنَنظُرُ | أَصَدَقْتَ | |
| اووئيل سليمان | چې ګورو به مونږه | چې آيا رښتيا ويلې دې تا | |
| اسليمان ﷺ اوفرمائيل چې مونږ به ددې خبرې تحقيق کوو\| چې ته رښتيا | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَمْ كُنتَ | مِنَ الْكَٰذِبِينَ ﴿٢٧﴾ | اذْهَب | بِّكِتَابِي | هَٰذَا | فَأَلْقِهْ |
| يا ئې ته | ددروغژنانونه | لاړ شه | دخط زما سره | چې دادې | اووې غورزوه |
| واټې \| که ته دروغژن يې \| ........لاړ شه او زما دا خط يوسه \|نو هغوئ ته ئې اوغورزوه | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَيْهِمْ | ثُمَّ | تَوَلَّ | عَنْهُمْ | فَانظُرْ | مَاذَا يَرْجِعُونَ ﴿٢٨﴾ |
| هغوئ ته | بيا | يو ارخ ته شه | دهغوئ نه | پس اوګوره | چې څه جواب ورکوی هغوئ |
| بيا ترې نه يو ارخ ته شه \| نو ګوره چې هغوئ څهٔ جواب درکوی \| چې خط ورته ملاوشو | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَتْ | يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ | إِنِّي | أُلْقِيَ | إِلَيَّ | كِتَابٌ كَرِيمٌ ﴿٢٩﴾ |
| اووئيل بادشهې | اے درباريانو | بيشکه زهٔ چې يم | راغورزولې شوې دې | ماته | يو خط عزتمند |
| نو ملکه سبا، اووئيل چې ائې زما درباريانو!ماته خو يو قيمتی خط راغورزولې شوې دې | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّهُ | مِن سُلَيْمَانَ | وَإِنَّهُ | بِسْمِ اللَّهِ |
| بيشکه دا خط | دسليمان دطرفنه دې | او بيشکه دا خط | شروع شوې دې دنوم دالله نه |
| دا د سليمان ﷺ د طرفنه دې \| اودائې ليکلې دی چې بسم الله | | | |

(١) احمد: ٣٣٢/١. ابوداود: کتاب الادب باب فی قتل الذر : ٥٢٦٧.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الرَّحْمٰنِ | الرَّحِيْمِ ۝ | اَلَّا تَعْلُوْا | عَلَيَّ | وَاْتُوْنِيْ |
| چې ښنونکي | مهربانه دي | چې سرکشۍ (لوئي) مهٔ کوئ | په مابانديې | او راشئ ماته |
| الرحمان الرحيم | تاسو زما په مقابله کښې سرکشي مه کوئي | | | او تابعدار راته |
| مُسْلِمِيْنَ ۝ | | | | |
| په حال دمسلمانۍ کښې | | | | |
| حاضر شئ | | | | |

**قوله تعالى:- قَالَ سَنَنْظُرُ اَصَدَقْتَ**

**دحضرت سليمان ﷺ دملکه سبا په نوم خط:-** دهُدهُد خبر اوريدلوسره حضرت سليمان ﷺ ددې تحقيق شروع کړو.چه که دا ربښتونې دې.نوقابل دمعافۍ دی.اوکه دروغژن دې نوقابل د سزادی.خکه نې اوفرمائيل.چه دا خط بلقيس ته کومه چه هلته حکم چلونکي ده، ورکړه.هُدهُد داخط په خله کښې اونيولو.يائې په وزر پورې اوتړلو او والوتلو.هلته چه اورسيدلو دبلقيس محل ته لاړلو.هغه دغه وخت په خلوت خانه کښې وه.هغهٔ د يو روشندان نه دا خط دهغې مخې ته کيخودلو.او ادب سره يوطرف ته شو.هغې ته سخت تعجب معلوم شو.حيرانه شوه.او ورسره څه ويره هم شوه.خط نې اوچت کړو.مهرنې مات کړو.خط نې کُهلاوکړو.وې لوستلو.دهغې دمضمون نه خبر شوه.خپل وزيران،اميران، سرداران،اومشران نې جمع کړل.اووې وئيل.چه يو عزت ناک خط زما مخې ته غورزولې شوې دې.ددې خط عزت ناک کيدل په هغې باندې ددې نه هم ښکاره شوی وو.چه يوځناور داراوړلو.هغې هوښيارتيا اواحتياط سره راو رسولو.مخې ته نې په ادب سره کيخودلو اويوطرف ته شو.نو پوهه شوه.چه دا خط عزت ناک دې.اود يو عزت ناک سړی راليږلې شوې دې.بيانې دخط مضمون ټولوته واورولو.چه دا خط دحضرت سليمان ﷺ دې.اوددې په شروع کښې ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ ليکلې شوی دی. ورسره دمسلمانيدلو او تابعدار جوړيدلو دعوت دې.اوس ټولو اوپيژندلو.چه دا دالله تعالی د پيغمبر دعوت نامه ده.اوپه مونږکښې په چا کښې هم دهغوی دمقابلې وس اوطاقت نشته. بيادخط بلاغت،اختصاراووضاحت ټول حيران کړل. چه دا مختصرشان عبارت د ډيرو خبرونه زيات دې.درياب نې په کوزه کښې بندکړې دی.د علماء کراموويناده.چه د سليمان ﷺ نه مخکښې چاهم په خط کښې بسم الله الرحمن الرحيم نه ده ليکلې.

يوغريب اوضعيف حديث په ابن ابی حاتم کښې دې.حضرت بريده رضي الله عنه فرمائی چه زهٔ نبی کريم ﷺ سره روان ووم.چه هغوی اوفرمائيل.چه ماته يو داسې آيت معلوم دې.چه هغه زما نه مخکښې دسليمان ﷺ بن داؤد نه پس په هيڅ يونبی باندې نه دې نازل شوې.ما اووئيل.اې نبی ﷺ! هغه کوم آيت دې؟ نبی ﷺ اوفرمائيل.جمات ته دتلونه مخکښې به نې زهٔ تاته اوښايم.اوس نبی ﷺ اوونلو.يوه خپه نې هم دجمات نه بهر کيخوده.زما په زړهٔ کښې راغلل.چه شايد دنبی ﷺ نه هيرشول.په دې کښې نبی ﷺ دا آيت اولوستلو په بل روايت کښې دی چه ترڅو پورې دا آيت نه وو نازل شوې.نبی کريم ﷺ به ((بِاسْمِكَ اللّٰهُمَّ)) ليکلو.کله چه دا آيت نازل شو.نبی ﷺ ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ ليکل شروع کړل.دخط مضمون صرف دومره قدرې وو.چه زماپه مخکښې سرکشي مه کوه.ما مه مجبوروه.زما خبره اومنه.دتکبرنه کارمه اخله.مؤحد ، مخلص، مطيع جوړه شه ماته راشه.[1]

---

[1] الطبری : ۴۵۳/۱۹.

قَالَتۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمَلَؤُاْ أَفۡتُونِي فِيٓ أَمۡرِي
اووئیل بادشهې | اے سردارانو | فتوی (مشوره) راکړئ ماله | په کار زما
| هغې اووئیل چې ائې زما درباریانو ا ماته په دې باره کښې رائې راکړئ

مَا كُنتُ قَاطِعَةً أَمۡرًا حَتَّىٰ تَشۡهَدُونِ ۝ قَالُواْ نَحۡنُ
نۀ یم زۀ فیصله کونکې | دیوکار | تر هغې پورې | چې حاضر شئ تاسو | اووئیل هغوئ | مونږه
زۀ د هیڅ خبرې خلاصه فیصله تر هغې وخت پورې نه شم کولې اترڅو چې تاسو حاضر نه ئې

أُوْلُواْ قُوَّةٖ وَأُوْلُواْ بَأۡسٖ شَدِيدٖ وَٱلۡأَمۡرُ إِلَيۡكِ فَٱنظُرِي
خاوندان دقوت یو | او خاوندان | دجنګ سخت یو | او حکم (اختیار) | تاته دې | پس اوګوره ته
هغوئ اووئیل مونږ ډیر زور اور او جنګیالی یو | او نور ستا اختیار دې نو ته په خپله

مَاذَا تَأۡمُرِينَ ۝ قَالَتۡ إِنَّ ٱلۡمُلُوكَ إِذَا دَخَلُواْ قَرۡيَةً
چې څه حکم کوې ته | اووئیل هغې | چې بیشکه بادشاهان | کله چې ننوزي | یو کلی ته
اوګوره چې مونږ ته څه حکم راکول غواړې اهغې اووئیل چې څه وخت بادشاهان یو کلی

أَفۡسَدُوهَا وَجَعَلُوٓاْ أَعِزَّةَ أَهۡلِهَآ أَذِلَّةٗۚ وَكَذَٰلِكَ
نو خرابوي هغوئ هغه کلی | او جوړوي | عزتنمد خلق دهغې | ذلیلان | او همدارنګې |
ته ننوځي انوهغه تباه کوي | او دهغه ځائې معزز خلق بې عزته کوي | او دغه شان

يَفۡعَلُونَ ۝ وَإِنِّي مُرۡسِلَةٌ إِلَيۡهِم بِهَدِيَّةٖ فَنَاظِرَةُۢ
کاروئه کوي هغوئ | او بیشکه زۀ | لیږونکې یم | هغوئ ته | څه تحفې | بیا کتونکې یم زۀ |
به هغوئ هم کوي | او زۀ ورته څه سوغات لیږم | نو ګورم چې زما سفیران

بِمَ يَرۡجِعُ ٱلۡمُرۡسَلُونَ ۝
چې دڅه جواب سره | واپس راځي | استاذي زما
څه خبر راوړي |

**قوله تعالى:- قَالَتۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمَلَؤُاْ إِنِّيٓ أُلۡقِيَ إِلَيَّ كِتَٰبٞ كَرِيمٌ ۝**

**د بلقیس وزیرانو سره مشوره او دهغوب جواب:-** بلقیس دحضرت سلیمان ؑ خط هغوی ته واورولو. دهغوی نه ئې مشوره اوغوښتله. اووې وئیل. چه تاسوته معلومه ده. چه ترڅو پورې تاسوسره زۀ مشوره اونه کړم. اوتاسو موجودنه یئ: زۀ دیوکارفیصله یواځې نه کوم. په دې باره کښې هم ستاسونه مشوره غواړم. اووایئ چه ستاسوڅه رائې ده؟ټول په اتفاق سره جواب ورکړو. وې وئیل چه زمونږ جنګی طاقت ډیر زیات دې. او زمونږ طاقت منلې شوې دې. ددې طرفه خو اطمینان دې. مخکښې چه ستاسو څه حکم وی مونږ تابعدارئ دپاره موجود یو. په دې کښې یوحده پورې دلښکر سردارانو جنګ او مقابلې طرف ته ترغیب ورکړې وو. لیکن بلقیس چونکه هوښیاره وه. په انجام پوهیدله. اود هُدهُد په لاسونو دخط ملاویدلویوه ښکاره معجزه ئې لیدلې وه. دانې هم معلومه کړې وه. چه دحضرت سلیمان ؑ دطاقت په مقابله کښې زما لښکرهیڅ حقیقت نه لری. که د جنګ نوبت راغې. نود ملك بربادیدلونه علاوه به زۀ هم ژوندئ پاتې نه شم. په دې وجه هغې خپلو وزیرانو او مشیرانوته اووئیل. د بادشاهانو قاعده ده. چه

کله هغوی یوملك فتح کوی.نوهغه بربادوی.دهغه خائي عزت والاخلق ذلیل کوی.دلښکر سرداران د ښاربادشاهان خصوصیت سره دهغوی په نظرکښې وی.الله ﷻ په ماددې تصدیق اوکړو.چه یقینًا دا صحیح دي.هغوی به دغه شان-کول.ددې نه پس چه هغې کوم تدبیرباندې سوچ کړې وو.چه یوچال اوکړی.اوحضرت سلیمان ﷷ سره موافقت اوکړی اوصلح اوکړی.

**حضرت سلیمان ﷷ دپاره دبلقیس تحفه** :-هغې هغه دهغوی په مخکښې پیش کړو.چه داوخت خوزا یوه ډیره قیمتي تحفه هغوی ته لیږم.چه ددې نه پس زما قاصدانوته هغوی څه فرمائي؟ ډیره ممکن ده.چه هغوی داقبوله کړی.اوموږ بیا دپاره هم هغوی ته دارقم دجزیې په طورلیږو.اوهغوی ته په موږ باندې دحملې کولو ضرورت پیښ نه شی.په اسلام قبلولوکښې دغه شان هغې په دې هدیې لیږلو کښې ډیره هوښیارتیا نه کار واخستلو.هغه پوهیدله چه روپۍ پیسه داسې څیزدې چه فولاد هم نرموی.اوهغې دا ازمیښت کول هم غوښتل.چه اوګوری چه حضرت سلیمان ﷷ زموږ دا مال هم قبلوی اوکه نه؟ که قبول ئې کړو.نو پوهه شی چه هغه یو بادشاه دې.بیادهغوی سره مقابله کولوکښې څه باك نشته.اوکه واپس ئې کړو.نوبیا نبوت کښې ئې شك نشته.بیا مقابله سراسر فضول بلکه نقصان دې.(١)

| |
|---|
| فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ |
| \| نو هر کله چې \| ورغې قاصد \| سلیمان ته |
| \| نو څۀ وخت چې (دسبا) سفیر سلیمان ﷷ ته راغلو \| نوهغه ورته |
| قَالَ اَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ فَمَآ اٰتٰىنَِۦ اللّٰهُ |
| نو اووئیل سلیمان \| آیا امداد کوئ تاسو زما \| په مال سره \| پس هغه څه \| چې راکړی دی ماته الله |
| اووئیل چې آیا تاسو په مال باندې زما مدد کول غواړئ انو واورئی الله ﷻ چې ماته |
| خَيْرٌ مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ بَلْ اَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ |
| ډیر بهتره دی \| دهغې نه \| چې درکړی ئې دی تاسو ته \| بلکه تاسو \| په تحفو خپلو سره \| |
| څه راکړی دی\|هغه دهغې نه ډیر ښۀ دی اکوم چې هغه تاسو ته درکړی دی\| بلکه هم تاسو |
| تَفْرَحُوْنَ ارْجِعْ اِلَيْهِمْ فَلَنَاْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ |
| خوشحالیږئ \| واپس لاړشه اے قاصده \| هغوئ ته \| پس وربه ولو موږ هغوئ ته \| داسې لښکرې |
| پخپلو تحفو خوشحاله اوسئ \|ته خپلو خلقو ته واپس لاړ شه\| موږ بۀ ورپسې داسې فوځونه وراولیږو |
| لَّا قِبَلَ لَهُمْ بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ |
| چې نۀ به وی طاقت دمقابلې \| هغوئ لره \| دهغه لښکرو سره \| اواوبه باسو موږ هغوئ لره \| |
| چې دهغوئ به هیڅ مقابله اونکړې شی\|او موږ بۀ ئې دهغه ځائې نه په ذلت سره اوباسو |
| مِّنْهَآ اَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ |
| دهغه (ښار سبا) نه \| په داسې ذلت سره \| چې هغوئ به خوارو ذلیله وی |
| \| اوهغوئ به رسوا شی \| |

(١) الطبری: ۴۵۵/۱۹.

**قوله تعالى:- قَالَ أَتُمِدُّونَنِ بِمَالٍ**

**دحضرت سليمان ﷺ دتحفې قبلولونه انکار**:- بلقيس ډيره زياته قيمتی تحفه سليمان ﷺ ته اوليږله. سره زر، ملغلرې، جواهرات وغيره دسروزرو ډيرې زياتې خښتې،دسرو زرو لوخي وغيره، بعضې وائی چه څه هلكان يې دښځوپه جاموكښې،اوڅه ښځې ئې دجينكوپه جاموكښې اوليږلې.اووې وئيل كه دوی لره هغوی اوپيژندل.نوهغه لره نبی منل پكاردی.كله چه دوی سليمان ﷺ ته اورسيدل. نو هغوی ټولوته د اودس كولوحكم وركړو.جينكو خود لوخي نه اوبه اوبهيولې خپل لاسونه ئې وينځل.او هلكانو په لوخي كښې لاس دننه كړو،اوبه ئې واخستلې.په دې سره هغوی دواړه جدا جدا اوپيژندل او جدائې كړل.چه دا جينكۍ دی اودا هلكان دی.بعضې وائی چه داسې ئې اوپيژندل چه جينكو خو مخكښې دخپلولاسونو دننه حصه(تلې)اووينځلو.اوهلكانو ددې په خلاف بهرحصه مخكښې اووينځله. داهم نقل دی چه د هغوی نه يوړلې خود مړوندنه لاسونه وينځل شروع كړل.او ګوتې پورې ئې وينځل.اويو جماعت ددې په خلاف دلاسونو دګوتونه شروع كړله مړوند پورې ئې وينځل.په دې كښې يوهم منافات نشته.والله اعلم.

داهم ذكردی چه بلقيس يو لوښې ليږلې وو.چه داداسې اوبونه ډك كړه چه هغه نه دزمكې وی نه د آسمان، نوهغوی اسونه اوزغلول اودهغوی دخولونه ئې هغه لوښې ډك كړو.هغې څه خرمهرې يعنی سنك ياناقوس اويوه رسۍ ليږلې وه.هغوی هغه په رسۍ كښې اوپيلل.داټول اقوال عام طورباندې دبنی اسرائيل د روايتونونه اخستلې شوی دی.اوس الله ﷻ ته علم دې.چه په دې كښې په حقيقت كښې كوم څه اوشو،ياهيڅ اونه شو؟البته په ښكاره خود قرآن د الفاظونه معلوميږی.چه سليمان ﷺ هغې قيمتی تحفې طرف ته هيڅ توجه ورنكړله.اودهغې په ليدلونې اوفرمائيل.چه آيا تاسو ماته دمال رشوت راكوئ په شرك باندې باقی پاتې كيدلو غواړئ؟دا بالكل ناممكن دی.ماته رب ډير څه راكړی دی.ملك اومال اولښكرې ټول ماسره موجود دی.ستاسونه په هرشان ښه حالت كښې يم.(فَالْحَمْدُلِلّٰهِ)هم تاسوپه دې هديې سره خوشحاله شئ.داكار مې تاسوته اوسپارلوچه په مال راضی شئ او تحفه تاسو ټيټ كړی.دلته خو دوه خيزونه دی.ياشرك پريږدئ يا توره بندكړئ.داهم وئيلې شوی دی. چه دهغې دقاصدانو رارسيدلونه مخكښې سليمان ﷺ جناتوته حكم وركړو.اوهغوی زرمحلونه تياركړل.كوم وخت چه قاصدان دبادشاهۍ تخت ته راورسيدل.دامحلونه ئې اوليدل هوش ئې ختم شو.او وې وئيل دا بادشاه خوبه زمونږ داتحفې خپل سپكاوې اوګڼړی.دلته خوسره زردخاورې حيثيت هم نه لری.ددې نه هم داثابته شوه.چه بادشاهانو له داجائزدی.چه دبهرخلقودپاره څه مشقتونه اوكړی.اودقاصدانوپه مخكښې خپل ښائست ښكاره كړی

**قوله تعالى:- إِرْجِعْ إِلَيْهِمْ**

**د سليمان ﷺ د لښكرو بلقيس سره د جهاد اعلان**:- بيا سليمان ﷺ قاصدانوته اوفرمائيل.چه دا هديې هم هغې ته واپس كړئ.اوهغې ته اووايئ چه د مقابلې تياری اوكړئ.ياد ساتئ زۀ به هغه لښكرسره حمله كوم.چه هغوی مخې ته راتلې هم نه شی.دهغوی مونږسره دجنګ كولو طاقت هم نشته.مونږبه هغوی لره دهغوی دبادشاهۍ نه دوه لاسه دوه خپې ذلت او رسوايۍ سره اوباسو.دهغې تخت اوتاج به دخپو لاندې كړو.كله چه قاصدانو دهغې تحفې واپس يوړلې اورسيدل.اود بادشاه پيغام ئې هم واورولو. بلقيس ته دهغوی دنبوت يقين اوشو.اوپه خپله هم اوټول لښكر او رعيت (ماتحت) مسلمانان شول. او خپلولښكروسره هغه دحضرت سليمان ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه.كله چه سليمان ﷺ دهغې دا قصد معلوم كړو.نو ډيرخوشحاله شو.اود الله تعالى شكرئې اداكړو.

| قَبْلَ | بِعَرْشِهَا | يَأْتِيْنِيْ | اَيُّكُمْ | قَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا |
|---|---|---|---|---|
| مخكښې | تخت دهغې | به راوړی ماته | كوم يوله تاسو نه | اووئيل سليمان اے درباريانو |

(سليمان ﷺ) او وئيل چې ائې سردارانو ! څوک به ماته دهغې (ملكې) تخت ددې نه وړاندې راورسوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْ يَّاْتُوْنِيْ | مُسْلِمِيْنَ۝ | قَالَ | عِفْرِيْتٌ | مِّنَ الْجِنِّ |

ددې نه چې راشي هغوئ ماته | مسلمان (تابع) | اوونيل | يو زور ور پيرى | دپيريانونه
چې هغوئ راته تابع راشي ؟ | نو يو مضبوط پيرى ورته اوونيل | چې خه به ئې درته د دربار

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنَا اٰتِيْكَ | بِهٖ | قَبْلَ اَنْ تَقُوْمَ | مِنْ مَّقَامِكَ ۚ | وَاِنِّيْ |

زۀ به راوړم تاته | دا تخت | مخکښې ددې نه چې ته پاسې | دخائې خپل نه | او بيشکه زۀ |
ختميدو نه وړاندې راحاضر کړم | او زه ددې طاقت لرم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | لَقَوِيٌّ | اَمِيْنٌ۝ | قَالَ الَّذِيْ | عِنْدَهٗ | عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ |

په راوړلو دهغې | قوى | امانتگر يم | اوونيل هغه سړي | چې دهغه سره | علم وۀ دکتاب نه
او امانتدار يم | يو بل سړي چې دکتاب علم ورسره وو | هغه اوونيل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَنَا اٰتِيْكَ | بِهٖ | قَبْلَ | اَنْ يَّرْتَدَّ | اِلَيْكَ | طَرْفُكَ ؕ | فَلَمَّا |

زۀ به راوړم تاته | دا تخت | مخکښې ددې نه | چې واپس راشي | تاته | نظر ستا | نو هر کله چې
چې زه ئې د سترگو درپولو نه وړاندې راحاضرولې شم | نو چې سليمان ﷺ هغه تخت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَاٰهُ | مُسْتَقِرًّا | عِنْدَهٗ | قَالَ | هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّيْ ۗ |

اوليدو سليمان هغه | پروت | خپل خواته | نو وې وئيل | داکار دفضل درب زمانه دې |
خپل خان سره پروت اوليدو | نو وې وئيل چې دا زما د رب فضل دې |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِيَبْلُوَنِيْٓ | ءَاَشْكُرُ | اَمْ اَكْفُرُ ؕ | وَمَنْ شَكَرَ |

دپاره ددې چې وازماني ماله | چې شکر اوباسم زۀ | يا ناشکرى کوم زۀ | او څوک چې شکر کوى |
چې په ما امتحان اوکړي | چې زه ئې شکر اوباسم | او که ناشکرى کوم او څوک چې شکر کوى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاِنَّمَا | يَشْكُرُ | لِنَفْسِهٖ ۚ | وَمَنْ كَفَرَ | فَاِنَّ رَبِّيْ |

نو بيشکه | هغه شکر کوى | دپاره دخان خپل | او څوک چې ناشکرى کوى | پس بيشکه | رب زما
نو د خپل خان گټې له شکر کوى | او څوک چې ناشکرى کوى | نو زما رب

| | |
|---|---|
| غَنِيٌّ | كَرِيْمٌ۝ |

بې حاجته دې | کرم والا دې |
غنى دې | او کريم دې |

**دبلقيس سره دلښکرو سليمان ﷺ طرفته روانيدل:** کله چه قاصدان واپس اورسيدل اوبلقيس ته ئې دوباره دنبوت پيغام اورسولو. نوهغه پوهه شوه. اووې وئيل په الله قسم ادا ربنتونې پيغمبر دې. اودپيغمبر مقابلې ته څوک نه شى ټينگيدلې. هم دغه وخت ئې دوباره قاصد اوليږلو. چه زۀ دخپل قوم سردارانوسره خدمت کښې حاضريږم. چه په خپله تاسوسره ملاوشم، دينى معلومات حاصل کړم. او تاسو نه خپله تسلى اوکړم. ددې وينا نه پس ئې دلته خپل يونائب جوړکړو. د بادشاهت انتظامات ئې هغه ته اوسپارل. خپل لاجوابه قيمتى جوړشوې تخت کوم چه د سرو زرو وو. په اووۀ محلونوکښې ئې تالا کړو. اوخپل خليفه ته ئې دهغې دحفاظت خاص تاکيد اوکړو. او دولس زره سرداران چه په هغوى کښې دهريو ماتحت په

زرګونو سړي وو.خپل خان سره ئې روان کړل.اود سليمانؑ ملك طرف ته روان شول.چناتوبه قدم په قدم اود وخت وخت خبرونه سليمانؑ ته رسول.

**قوله تعالى:- قَالَ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِيْ بِعَرْشِهَا**

**دسليمان ؑ دبلقيس دتخت راوړلو حكم اوتخت حاضريدل:**-کله چه هغوی ته معلومه شوه.چه هغوی نزدې رارسيدلی دی.نوهغهٔ خپل يودربارکښې چه په هغې کښې جنات اوانسان ټول موجودوو.وې فرمائيل چه څوك شته چه هغه دهغې تخت دهغې د رارسيدلونه مخکښې دلته راوړسوی؟ (۱) ځکه چه کله هغه دلته راشي.اوپه اسلام کښې داخله شي.بيابه دهغې مال په مونږباندې حرام شي.(دا قول د قتادهؓ دې.ډيره ممکن ده چه ددې اصل هم څه اسرائيلي روايت وی) په دې اوريدوسره يو طاقتور سرکش جن چه دهغهٔ نوم کوزن وو.چه هغه د يولوئې غريه شان وو.هغهٔ اووئيل.که چرې تاسوماته حکم راکړئ. نو ستاسودربارمجلس ختميدلونه مخکښې به ئې زهٔ راوړم. هغوی به دخلقوفيصلې کولې، او جهګړې به ئې خلاصولې،او انصاف به ئې کولو.دسحرنه تر غرمې پورې به عام دربارلګيدلې وو.هغهٔ اووئيل. زهٔ ددې تخت راوړلو طاقت لرم.اوزهٔ امانت دارهم يم.دهغې نه به هيڅ څيزنه پټوم.حضرت سليمانؑ اوفرمائيل.زهٔ غواړم چه ددې نه هم مخکښې هغه ماته راورسي.ددې نه معلوميږي چه دالله د نبي حضرت سليمان بن داؤد ددې تخت راغوښتلو غرض داوو.چه خپل يو زبردسته معجزه اود پوره طاقت ثبوت بلقيس ته اوښائي.چه دبلقيس هغه تخت هغې ته اوښائي.کوم چه هغې په اووهٔ تاله شوو محلونوکښې ايخودې وو.هغه دهغې دراتلونه مخکښې دسليمانؑ په دربارکښې موجود دې.(هغه مقصدنه ووکوم چه پورته په روايت دقتادهؓ سره بيان شو)دسليمانؑ ددې جلتې تقاضې اوريدلو سره هغه کس اووئيل چاسره چه دکتابعلم وو.دابن عباسؓ قول دې چه داآصف وو.چه داد سليمان ؑ کاتب وو.دهغهٔ د پلارنوم برکيا وو.دا ولي الله وو.اسم اعظم ورته معلوم وو.پوخ مسلمان وو.دبني اسرائيلونه وو.مجاهدؒ وائي چه دهغهٔ نوم اسطوم وو.بليخ هم نقل دې.دهغهٔ لقب ذوالنوروو. دعبدالله بن لهيعه قول دې.چه داخضر وو.ليکن دا قول ډيرغريب دې.هغه اووئيل چه تاسوخپل نظر واړوئ کوم ځائې ته چه رسيږی نظراوکړه.اوس به تاسولاګورئ چه زهٔ به ئې راوړم.پس سليمانؑ يمن طرف ته چرته چه دهغې تخت وو.نظرئې اوکړو.دلته هغه پاسيدلو.اودس ئې اوکړوبه دعاکښې مشغول شو.اووې وئيل.((ياذوالجلال والاكرام)) (۲)يائې اوفرمائيل ((ياالهنا واله كل شئ الها واحدا لااله الا انت ائتني بعرشها)) دغه وخت د بلقيس تخت مخې ته راغې.دومره لږشان وخت کښې ديمن نه بيتُ المقدس ته هغه تخت راورسيدلو.اود سليمانؑ د لښکريه وړاندې د زمکې نه راووتلو.

**قوله تعالى:- فَلَمَّا رَاٰهُ مُسْتَقِرًّا عِنْدَهٗ قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّيْ**

**تخ رارسيدلو باندې دسليمان ؑ دالله ﷻ نه دعاوشكر:**-کله چه سليمانؑ هغه خپلې مخې ته موجود اوليدلو. نووې فرمائيل.دا صرف زماد رب مهرباني ده.چه هغه زما ازميښت اوکړی.چه زهٔ شکر کوم او که ناشکري؟ څوك چه شکراوکړی هغه خپله فائده کوی.اوڅوك چه ناشکری اوکړی هغه خپل نقصان کوی.اللهﷻ دبندګانو دبندګئ نه بې نيازدې.اوبه خپله دبندګانونه هم دهغهٔ عظمت دچا محتاج نه دې. لکه چه فرمان دې.(مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ) اخ څوك چه نيك عمل کوی.هغه دخان دپاره دې.او څوك چه ګناه کوی هغه دخان دپاره دې،بل ځائې کښې دی څوك چه نيکی کوی هغوی دخان دپاره نيکی جمع کوی،موسیؑ خپل قوم ته فرمائيلي وو.تاسو اودمخ دزمکې ټول انسانان هم که داللهﷻ کفر اوکړی. نودالله ﷻهيڅ نقصان نه شئ کولې.هغه غنی دې اوحميددې.په صحيح مسلم کښې دی.چه اللهﷻ

(۱) الطبری : ۱۹/۴۲۰.

(۲) الطبری : ۱۹/۴۶۶.

فرماني.اې زما بندګانو اګه ستاسو ټول مخکښي روستو انسانان جنات، دغوره نه غوره اودنيك بخت نه نيك بخت شي.نوزمابادشاهي زياتيدې نه شي.اوكه ټول په ټوله بدبخته اونافرمانه شي.نوزما بادشاهي كميدې نه شي.داخو صرف ستاسوعملونه دي.چه جمع كيږي. او هم تاسوته به ملاويږي.چه كومه نيكي بياموميئ نودالله ﷻ شكراداكړئ.اوكومه بدي چه اووينئ نو صرف خپل نفس ملامته كړئ.(۱)

قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا عَرْشَهَا نَنْظُرْ

| اوونيل سليمان | نااشنا كړئ | هغې ته | تخت دهغې | مونږ ګورو

| سليمان ﷺ اووئيل چې ددې دتخت شكل بدل كړئ| چې اوګورو

اَتَهْتَدِيْٓ اَمْ تَكُوْنُ مِنَ الَّذِيْنَ لَا يَهْتَدُوْنَ۝ فَلَمَّا

چې ايا هغه صحيح لاره مومي | يا كيږي هغه | دهغه كسانونه | چې لارنۀ مومي | نو هر كله چې

چې هغه پيژندې شي | كه په هغه ناپوهه خلقو كښې ده چې خيز پيژندلې نشي | نو څۀ

جَآءَتْ قِيْلَ اَهٰكَذَا عَرْشُكِ ؕ قَالَتْ كَاَنَّهٗ

راغله هغه | نو ورته اوونيلې شو| ايا درانګې دې | تخت ستا | اوونيل هغه | لكه چې دا |

وخت چې هغه (ملكه) راورسيده| نو ورته اوونيلې شو| چې ايا ستا تخت ددې په شان دې |هغې اوونيل

هُوَ ۚ وَاُوْتِيْنَا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِيْنَ۝

هغه دې | او راكړې شوې وو مونږ ته | علم | مخكښې ددې نه | اوو مونږه | مسلمانان

لكه چې هم دا هم هغه دې |اوله دې نه وړاندې مونږ ته (ستاد صداقت) علم شوې وو| اوستا تابع شوي يو

وَصَدَّهَا مَا كَانَتْ تَّعْبُدُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ

اومنع كړې وه هغې لره|هغه خيزا چې وه هغه | چې عبادت به ئې كولو | بې دالله نه (دنورو معبودانو)

اوهغه ښځه دالله تعالى نه سوا دنورو معبودانو عبادت د اسلام نه منع كړې وه

اِنَّهَا كَانَتْ مِنْ قَوْمٍ كٰفِرِيْنَ۝ قِيْلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ ۚ

بيشكه هغه | وه | دقوم | كافر نه | اوونيلې شو | هغې ته | چې ننوزه | دې محل ته

هغه ديو كافرقوم ښځه وه | دې ته اوونيلې شو | چې دې محل ته داخله شه

فَلَمَّا رَاَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَّكَشَفَتْ

پس هركله چې|اوليدو هغې هغه محل|نو ګمان ئې اوكړو په هغې|داوبو دتالاب|اوچتې ئې كړې پائينڅې خپلې

څه وخت چې هغې (فرش) ته اوكتل|نو هغه ئې ژورې اوبه اوګڼلې اپينسې ئې اوچتې كړې

عَنْ سَاقَيْهَا ؕ قَالَ اِنَّهٗ صَرْحٌ مُّمَرَّدٌ مِّنْ قَوَارِيْرَ ؕ

دپنډو خپلونه | اوونيل سليمان | چې بيشكه دا | محل دې | صفا هوار كړې شوې | دشيشې نه

اوخپلې پنډئ ئې ښكارندې كړې |سليمان اوونيل دا خو يو محل دې |چې دشيشې نه جوړ كړې شوې

(۱) صحيح مسلم كتاب البر والصلة باب تحريم الظلم: ۲۵۷۷. ترمذى : ۲٤۹۵.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَتْ | رَبِّ | إِنِّي | ظَلَمْتُ | نَفْسِي | وَأَسْلَمْتُ |
| اووئيل هغې | اے ربه زما | بيشکه زه | چې يم ظلم کړي دې ما | په خان خپل | باندې او اطاعت قبول کړو ما |
| دې | هغې او وئيل چې | اے زما ربه ! ما تر او سه | پورې په خان ظلم کړې | | او نن مې دسليمان |
| مَعَ سُلَيْمَٰنَ | لِلَّهِ | رَبِّ الْعَٰلَمِينَ ﴿٤٤﴾ | | | |
| دسليمان سره | دالله | چې پالونکې دمخلوقاتو دې | | | |
| عليه السلام سره په الله ﷻ | | چې رب العالمين دې ايمان راوړوا | | | |

**دبلقيس دسليمان عليه السلام په خدمت کښې حاضريدل او ايمان راوړل**:-ددې تخت راتلونه پس حضرت سليمان عليه السلام حکم ورکړو.چه په دې کښې لږشان بدلون او تبديلى اوکړئ.بس څه هيرې جواهرات بدل کړې شول.په رنګ روغن کښې تبديلى اوکړې شوه([1]).لاندې باندې نه هم څه بدل کړې شو.څه کمې زياتې هم اوکړې شو.چه د بلقيس ازميښت اوکړى.چه هغه خپل تخت پيژندلې شى اوکه نه؟کله چه هغه راورسيده نو هغې ته اووئيلې شو.چه آيا ستا تخت داديَ؟ هغې جواب ورکړو.چه هوبهو هم ددې پشان دې.ددې جواب نه دهغې تيزنظر، عقلمندى، لائق توب او هوښيارتوب ښکاره دې.چه دواړه طرفه ئې مخې ته اوساتل. وې ليدل چه تخت بالکل زما دتخت په شان دې.اوپه ښکاره دهغې دلته رارسيدل ناممکن دى.نوداسې دشک خبره ئې اوکړه.حضرت سليمان عليه السلام اوفرمائيل.ددې نه مخکښې مونږته علم راکړې شوې وو.اومونږ مسلمانان وو.بلقيس لره دالله تعالى نه سوا د نوروعبادت اودهغې کفر دالله تعالى د توحيدنه منع کړې وه.اوداهم کيدې شى چه حضرت سليمان عليه السلام بلقيس لره دغيرالله دعبادت نه منع کړله.ددې نه مخکښې دکافرانو نه وه.ليکن دړومبى قول تائيد ددې نه هم کيدې شى.چه بلقيس داسلام قبلولواعلان محل کښې داخليدونه پس کړې دې.لکه چه ډيرنزدې به بيان شى سليمان عليه السلام د جناتو په لاسونو يومحل جوړکړې وو.چه هغه صرف د شيشې اوکانچ وو.او دهغې لاندې د اوبونه ډک تالاب وو.شيشه ډيره صفاوه.راتلونکى د شيشې فرق نه شوکولې.بلکه هغه ته به هم دامعلوميده. چه ټولې اوبه دى.حالانکه دهغې دپاسه دشيشې فرش وو.

**دسليمان د شيشې د محل جوړلو مقصد څه وو؟په دې کښې د علماء کرامو اختلاف دې**:-دبعضې خلقو بيان دې.چه دې کاريګرئ نه د سليمان عليه السلام مقصد داوو.چه هغوى هغې سره نکاح کول غوښتل.ليکن دانې اوريدلى وو.چه دهغې پنډئ ډيرې خرابې دى.اودهغې ګيټئ د خاروؤ د نوکانوپه شان دى. ددې تحقيق دپاره هغوى داسې کړې وو.کله چه هغه دلته راغله.نود اوبو تالاب ئې اوليدهٔ خپلې پائنڅې ئې اوچتې کړې.هغوى اوليدل چه کومه خبره ماته رارسيدلې ده غلطه ده.دهغې پنډئ اوخپې بالکل د انسانانوپه شان دى.څه نقصان يا بدصورتى پکښې نشته. البته چونکه بې واده وه.په پنډو باندې ئې ويښته لونې لونې وو.هغوى پترى (بليډ) سره د کټ کولو مشوره ورکړله.ليکن هغې اووئيل.ددې برداشت به زمانه اونه شى.هغوى جناتوته اووئيل څه څيزجوړکړئ چه هغې سره ويښته ختم شى. نو هغوى هړتال (چونه) پيش کړله.چه دا دوائى دټولونه مخکښې دحضرت سليمان عليه السلام په حکم سره تلاش کړې شوه.

اوځنې وائى چې محل ته د راغوښتلو وجه داوه چه هغه دخپلې بادشاهئ نه،دخپل دربارنه،دخپل رونق نه، دخپل سازوسامان نه،دخپلو خوندونو اوعيش نه،اودخپل ځان نه لويه هستى اووينى.اوخپل مال دولت اونوکران چاکران ئې دنظرونونه اوغورزيږى.چه دې سره تکبر او غرورختميدل هم يقينى وو. کله چه دننه راغله او تالاب ته راورسيده نوهغه ئې چپې وهونکې درياب اوګنړلو پائنڅې ئې اوچتې

---

[1]) الطبرى : ۱۹/۴۶۹.

کړي. دغه وخت اوونیلي شوچه ته غلطه شوې. په دې خوشیشه لګیدلې ده.تاسوددې دپاسه دخپو لوندیدونه بغیر راتلې شئ:هغه چه سلیمان ته نزدې راورسیده.هغوی دهغې په غوږونو کښې د توحید خبرې واچولې.اود نمرپرستۍ مذمت نې ورته واورولو.ددې محل په لیدلو،په دې حقیقت باندې نظر اچولو سره،د دربار رونق لیدلوسره هغه دومره پوهه شوه.چه زما بادشاهي خو ددې بادشاهۍ ډیره کمه ده لاندې اوبه دی،دپاسه پرې شیشه ده.په مینځ کښې دسلیمان تخت دې.دپاسه پرې دمار غانوسورې دي.جنات اوانسانان ټول حاضردي.اوتابع فرمان دی.کله چه هغې ته دتوحید دعوت ورکړې شو. نود بې دینوبه شان هغې هم د زندیقیانو جواب ورکړو.چه هغې سره دالله تعالی په شان کښې ګستاخي لازمیدله.دهغې په اوریدوسره سلیمان دالله تعالی په مخکښې سجده کښې پریوتلو.او د هغوی په لیدلودهغوی ټول لښکرهم،اوس خوهغه ډیره پښیمانه شوه.اوسلیمان هم اورټله چه څه دې اوونیل؟هغې اوونیل زمانه غلطي اوشوه.اوهم دغه وخت الله تعالی ته په سجده شوه.اووې وئیل.اې الله ماپه خپل ځان باندې ظلم اوکړو.اوس ماحضرت سلیمان سره په الله رب العالمین باندې ایمان راوړلو.اوپه رښتونی زړه سره مسلمانه شوه.

**دسلیمان دبادشاهۍ متعلق اوږد اومنکر روایت:**-په ابن ابی شیبه کښې دلته یو غریب اثر دابن عباس نه نقل دې.هغوی فرمائي چه حضرت سلیمان به کله په تخت باندې کیناستلو.نوهغوی سره نزدې کرسو باندې به انسانان کیناستل.بیابه هغې سره نزدې کرسوباندې جنات کیناستل.بیابه د هغوی نه پس شیطانان کیناستل.بیابه هوا هغه تخت اوچتولو.او رازورېد به وو.بیابه مارغان راتلل خپلو وزروسره به نې سورې جوړکړو.بیابه هغوی هواته حکم کولو.اوهغه به روان شو.سحرسحر به نې د میاشتو فاصلې باندې رسولو.دغه شان به دماښام د میاشتو لرې سفرپوره کیدلو.

یوځل دغه شان هغوی روان وو.د مارغان تلاش نې چه اوکړو.نوهدهد نې غائب بیا موندلو.ډیرخفه شو.اووې فرمائیل.هغه ماته په جماعت کښې په نظرنه راځي.په رښتیا غیرحاضردې.نوزۀ به هغۀ ته سخته سزا ورکړم.بلکه حلال به نې کړم.البته دا جداخبره ده.چه هغه دغیرحاضرۍ څه معقوله وجه بیان کړي.په داسې موقع به هغوی د مارغانو وزرې ویستلې اوپه زمکه به نې غورزولې،چینجو مینجو به هغه خوړلې.ددې نه پس لږوخت کښې پخپله حاضرشو.خپل سبا ته تلل اودهغه ځائې خبر راوړل نې بیان کړل.حضرت سلیمان دهغه د رښتیاؤ د ازمیښت دپاره هغۀ لره د ملکۀ سبا په نوم باندې یو خط ورکړو،او دوباره نې اولیږلو.چه په هغې کښې ملکه ته هدایت کولې شي چه زما نافرمانی مه کوه. او مسلمانه شه زما خواته راشه.ددې خط په لیدوسره دملکه په زړۀ کښې ددې خط اوددې د لیکونکي عزت کیني.هغوی خپلو درباریانوسره مشوره کوی.هغوی په خپل قوت باندې نازکوی اووائي چه مونږ تیار یو.صرف د اشارې انتظاردې.لیکن د بد وخت اوخپل شکست باندې نظرکولوسره ددې ارادې نه منع کیږي.اود دوستۍ سلسله داسې شروع کوی.چه تحفې اوهدیې حضرت سلیمان ته لیږي.چه هغې لره سلیمان واپس کوی.اود حملې کولو دهمکي ورکوی.اوس هغه دخپل طرفه روانیږي کله چه نزدې اورسي.اودهغې دلښکر دورې سلیمان اووینی نوبیا فرمائي.چه ددې تخت راوړئ .یو جن وائي ډیره ښۀ زۀ نې اوس راوړم.ستاسو ددې ځائې نه دپاسیدونه مخکښې مخکښې به نې راوړم. سلیمان اوفرمائیل.آیا ددې نه زرممکن ده؟ په دې باندې خوهغه خاموش شو. لیکن دکتاب علم والااوونیل.اوس د سترګې په رپ کښې،په دې کښې نې چه اوکتل په کومه کرسۍ باندې قدم ایښودلو سره چه حضرت سلیمان شاهی تخت ته ختلې وو.دهغې لاندې نه دبلقیس تخت راښکاره شو. هغوی دالله شکراداکړو.خلقوته نې نصیحت اوکړو.اوپه هغې کښې دڅه ردوبدل کولوحکم نې ورکړو. د هغې راتلوسره نې دهغې نه ددې تخت باره کښې تپوس اوکړو.نوهغې اوونیل.ګویا هم هغه دې.هغې د

سلیمانﷺ نه دوه څیزونه اوغوښتل.یو داسې اوبه چه هغه نه د زمکې نه راوتلې وی.نه داسمان نه راوریدلې وی.دسلیمانﷺ عادت وو.چه کله به دڅه تپوس کولوضرورت پیښ شو.نواول به ئې دانسانانونه تپوس کولو.بیا دجناتونه،بیا دشیطانانونه.ددې سوال په جواب کښې شیطانانو اوونیل.چه دا څه مشکل څیزنه دی.اسونه اوزغلوه او دهغې د خولونه هغې ته یوه ډکه پیالۍ ورکړه. ددې سوال دپوره دکیدونه پس هغې دویم سوال اوکړو.چه دالله تعالی رنګ څنګه دې؟ ددې په اوریدو سره سلیمانﷺ ډیرغصه شو.اوهم دغه وخت په سجده کښې پریوتلو.اوالله تعالی ته ئې عرض اوکړو. چه اې الله‌دې داسې سوال اوکړو.چه زه خو ددې ستانه تپوس هم نه شم کولې.دالله تعالی دطرفه جواب ملاوشو.چه بې فکره شه.زه درله کافی یم.هغوی دسجدې نه پاسیدل اووې فرمائیل تاڅه تپوس کړې وو؟ هغې اوونیل د اوبوپاره کښې زما سوال وو.هغه تا پوره کړو.بل څه خوماتپوس نه دې کړې. هغې په خپله اودهغې ټول لښکر والو دویم سوال هیرکړو.هغوی دلښکر والونه هم تپوس اوکړو .چه دې دویم سوال کوم کړې وو؟ نوټولو هم داجواب ورکړو.چه سوا داوبونه ئې بل څه دویم سوال نه دې کړې. د شیطانانو په زړه کښې خیال راغې.چه که سلیمانﷺ دا خوښه کړله اودا ئې په خپله نکاح کښې واخستله.او اولادئې هم اوشو.نودا زمونږنه همیشه دپاره لاړه.په دې وجه هغوی تالاب جوړکړو.د اوبونه ئې ډك کړو.اودپاسه ئې پرې د شیشې فرش جوړکړو.په داسې طریقې سره کتونکی ته دامعلوم هم نه شی هغه ئې اوبه اوګڼړی.کله چه بلقیس دربارته راغله.اوپه هغه خاتې تیریدله.نود اوبوپه خیال ئې خپلې پائنڅې اوچتې کړلې.سلیمانﷺ د پنډو وینښته لیدلوسره ناخوښی ښکاره کړله.لیکن ورسره ئې اوفرمائیل.چه ددې دلرې کولوکوشش اوکړه.نو اوونیلې شوچه پترې سره لرې کیدې شی. هغوی اوفرمائیل ددې نشان زما ناخوښه دې.بل څه چل اوښایئ.پس شیطانانو طلا(چونه) جوړه کړله.چه د هغې لګولوسره وینښته لرې شو.پس اول اول بال صفا طلا دحضرت سلیمانﷺ حکم سره تیارشوی دی.

امام ابن ابی شیبهؒ ددې قصې نقل کولونه پس لیکلی دی داخومره ښه قصه ده لیکن زه وایم بالکل منکراوسخت غریب ده.دا دعطاء بن سائب وهم دې.چه هغه دا دابن عباسؓ په نوم سره بیان کړې دې. او قیاس ته زیاته نزدې خبره داده.چه دادبنی اسرائیلودرجسترنه اخستې شوې ده.کوم چه مسلمانانو کښې کعب او وهب مشهوره کړې وه.الله تعالی دې هغوی معاف کړی.پس په دې قصوهیڅ اعتماد نشته.بنی اسرائیل خو جدت پسند وو.نوې نوې قصې به ئې جوړولې.بدلول، دخانه جوړول، کمې زیاتې کول،دهغوی په عادت کښې داخل وو.داللهﷻ شکردې.چه مونږئې دهغوی محتاج نه یو ساتلی.مونږته ئې هغه کتاب راکړو.اودخپل نبیﷺپه ژبه ئې هغه خبرې راورسولې.چه هغه په نفع کښې، وضاحت کښې،بیان کښې دهغوی دخبرونه ډیرې اعلی او اوچتې دی.ددې سره ډیرې فائده منده او ډیراحتیاط والادی.فالحمدلله.

قوله تعالی:- قِيْلَ اَهٰكَذَا عَرْشُكِ ط

صرح وائی محل ته اوهراوچت عمارت ته.لکه چه فرعون ملعون هم خپل وزیر هامان ته دا وئیلی وو.چه ﴿ يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا ﴾ دیمن ډیوخاص اعلی اوچت محل نوم هم صرح وو.ددې نه مرادهغه عمارت دې.چه هغه محکم،مضبوط اوقوی وی.د بلور اوصفا شیشې نه جوړکړې شوې وو.په دومة الجندل کښې یوه قلعه ده.دهغې نوم هم ماردد دې.مقصد صرف دومره وو.چه کله دغه ملکه(بلقیس)دسلیمانﷺ دا اوچتوالې،لونې شان وشوکت اودابادشاهت اولیدهٔ.اوپدې کښې غور او فکر سره دحضرت سلیمانﷺ سیرت،دهغوی نیکی،او دهغوی دعوت واوزیدهٔ.نو یقین ئې اوشو.چه دا د الله رښتونې رسول دې.هم هغه وخت مسلمانه شوه.دخپل مخکینی کُفر اوشرك نه ئې توبه ویستله.اود سلیمانﷺ ددین تابعداره جوړه شوه.دالله تعالی عبادت ئې شروع کړو.چه هغه خالق مالك، متصرف اومختارکل دې.

| | | |
|---|---|---|
| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ | اِلٰى ثَمُوْدَ | |
| او ليږلي وو مونږ | ثموديانو ته | |
| او مونږ ثموديانو ته | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَخَاهُمْ | صٰلِحًا | اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ | فَاِذَا | هُمْ | فَرِيْقٰنِ | |
| رور دهغوئ | صالح | چې بندګي کوئ دالله | نو پس شو | هغوئ | دوه ډلې | |
| دهغوئ رور صالح ﷺ اوليږلوا چې تاسو دالله ﷻ عبادت کوئی نوهغوئ دوه ټولی شول | | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَخْتَصِمُوْنَ۝ | قَالَ | يٰقَوْمِ | لِمَ تَسْتَعْجِلُوْنَ |
| چې يو بل سره ئې جګړې شروع کړې | اووئيل صالح | اے قومه زما | ولې تلوار کوئ تاسو |
| چې په خپل مينځ کښې به ئې جګړې کولې صالح ﷺ اووئيل چې اے زما قومه ! تاسو ولې دنيکئ | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالسَّيِّئَةِ | قَبْلَ الْحَسَنَةِ | لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ | اللّٰهَ | لَعَلَّكُمْ |
| په بدئ | مخکښې دنيکئ نه | ولې نۀ غواړئ تاسو بښنه | دالله نه | دپاره ددې چې |
| کولو نه وړاندې په عذاب راوستو باندې تلوار کوئی تاسو ولې دالله ﷻ نه معافی نه | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تُرْحَمُوْنَ۝ | قَالُوا | اطَّيَّرْنَا | بِكَ | وَبِمَنْ |
| په تاسو رحم اوکړې شي | اووئيل هغوئ | چې بدفالي نيولی ده مونږه | په تاباندې | او په هغه چا |
| غواړئی چې الله ﷻ درباندې رحم اوکړي هغوئ جواب ورکړوا چې مونږ ته ته اوستاملګرې | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَّعَكَ ط | قَالَ | طٰٓئِرُكُمْ | عِنْدَ اللّٰهِ | بَلْ اَنْتُمْ | قَوْمٌ |
| چې ستا سره دی | اووئيل صالح | بدفالي ستاسو | دالله سره ده | بلکه يئ تاسو | يو قوم |
| سپيره ښکاری صالح اووئيل چې ستاسو سپيره توب دالله ﷻ دطرفنه دي بلکه تاسو هغه خلق يئ | | | | | |

| |
|---|
| تُفْتَنُوْنَ۝ |
| چې ازمائيلې کيږئ |
| چې په ازميښت کښې اخته شوي يئ |

**قوله تعالی:- وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا**

**دحضرت صالح ﷺ خپل قوم ته بيان د توحيد او دهغوئ انکار:-** حضرت صالح ﷺ چه کله خپل قوم ثمود ته راغې.او دالله تعالی رسالت اداکولوسره ئې هغوی ته د توحيد دعوت ورکړو.نوپه هغوی کښې دوه ډلې جوړې شوې.يوه ډله د مؤمنانو او دويمه ډله دکافرانو.دوی (۱) په خپل مينځ کښې په جهګړه شول.لکه چه بل ځائې کښې دی.چه تکبر کونکو،عاجزی کونکوته اووئيل.چه آيا تاسوصالح دالله رسول منئ؟ هغوی جواب ورکړو.چه مونږپه ښکاره ايمان راوړلې دې.هغوی اووئيل.بس مونږهم دغه شان په ښکاره کافران يو.صالح ﷺ خپل قوم ته اوفرمائيل چه په تاسوڅه شوی دی.چه په ځائې درحمت غوښتلو عذاب غواړئ؟ تاسو استغفار اوکړئ.چه رحمت نازل شی.هغوی جواب ورکړو.چه زمونږ خويقين دې چه زمونږ دټولومصيبتونو سبب ته يې اوستا دا منونکي دی. هم دا فرعونيانو کليم الله ته وئيلی وو.چه کوم نعمتونه مونږته ملاوېږی دهغې لائق خو مونږيو.ليکن کوم مصيبتونه چه رارسی.هغه ټول ستا او

(۱) الطبری : ۱۹/۴۷۵.

ستا دملګروپه وجه دي.په بل آيت کښې دي ﴿وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ﴾الخ،يعني که دوی ته څه خيراورسي نو وائي چه دا دالله تعالی دطرفه دي.اوکه دوی ته څه مصيبت اورسيږي نو وائي چه دا ستا دطرفه دی.ته ورته اووايه چه هرڅه دالله تعالی دطرفه دی.يعني دالله ﷻ قضاء اوتقدير سره دی.په سورة يسين کښې هم دکافرانوخپلو پيغمبرانوته داوينا موجودده.﴿قَالُوا إِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ﴾مونږخو تاسوسره بدفالي اخلو. که تاسومنع نه شوئ.نومونږ خوبه تاسو سنګسار کړو.او سخته سزا به درکړو.جواب ئې ورکړو.چه ستاسوبدفالي خوهروخت ستاسوپه وجودکښې موجود ده.دلته دی چه صالح ﷺ جواب ورکړو چه ستاسو بدفالي خوالله ﷻ سره ده.يعني هم هغه به تاسوته ددې بدله درکوی.بلکه تاسوخو په فتنه کښې اچولی شوی خلق يئ.په تاسو ازميښت کولې شي.فرمانبرداریٔ سره هم اونافرمانیٔ سره هم.او باوجود ستاسو دنافرمانیٔ تاسوته مهلت درکولې شي.دادالله ﷻ دطرفه مهلت دې.ددې نه پس نيول دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُّفْسِدُونَ | تِسْعَةُ رَهْطٍ | وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ | |
| چې فساد به ئې کولو | نهه کسان | اووړ په ښار کښې | |

او په دې ښار کښې نهه سړي وو | چې په ملک کښې ئې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِاللهِ | تَقَاسَمُوا | قَالُوا | وَلَا يُصْلِحُونَ | فِي الْأَرْضِ |
| په الله باندې | چې قسمونه اوخورئ | اووئيل هغوئ | اونهٔ به ئې کولو کار داصلاح | په زمکه کښې |

فساد خورولو | او سم کار به ئې نه کولو | هغوئ اووئيل چې په خپل مينځ کښې په الله ﷻ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِوَلِيِّهِ مَا | ثُمَّ لَنَقُولَنَّ | وَأَهْلَهُ | | لَنُبَيِّتَنَّهُ |
| ولي دهغه ته | بيا به وايو مونږه | اوپه کور والو دهغه | | چې خامخا به دشپې حمله کوو په هغه |

قسمونه اوخورئ | چې شپه په شپه به صالح ﷺ او دهغه بال بچ مړه کړوا | او بيا به دهغه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَصٰدِقُونَ | وَإِنَّا | أَهْلِهِ | مَهْلِكَ | شَهِدْنَا |
| خامخا رښتيني يو | او بيشکه مونږه | دخاندان دهغه کښې | په وخت دهلاکت | چې حاضر نهٔ وو مونږ |

وارثانو ته اووايو | چې مونږ دهغه دبال بچ دوژلو په وخت کښې موجود نه ووا | او بيشکه مونږ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَهُمْ | مَكْرًا | وَمَكَرْنَا | مَكْرًا | وَمَكَرُوا |
| حال داچې هغوئ | يو پټ تدبير | اواوکړو مونږه (هم) | (فريب) يو پټ تدبير | او اوکړو هغوئ |

رښتيا وايو | او ثموديانو يو پټ تدبير اوکړو | او مونږ هم يو پټ تدبير اوکړو | چې هغوئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّا | مَكْرِهِمْ | عَاقِبَةُ | كَيْفَ كَانَ | فَانْظُرْ | لَا يَشْعُرُونَ |
| بيشکه مونږه | دپټ تدبير دهغوئ | انجام | چې څرنګ شو | پس اوګوره | هڅونه پوهيدل په هغې |

پرې نه پوهيدل | نو اوګوره چې ددغې خلقو د فريب انجام څهٔ شو | چې مونږ هغوئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَاوِيَةً | بُيُوتُهُمْ | فَتِلْكَ | أَجْمَعِينَ | وَقَوْمَهُمْ | دَمَّرْنٰهُمْ |
| چې خالي پراتهٔ دی | کورونه دهغوئ | پس دغه دی | ټول | او قوم دهغوئ | هلاک کړل هغوئ |

او دهغوئ ټول قوم هم تباه کړل | نو (اوس) دغه کورونه دی | چې ددوئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِمَا | ظَلَمُوا | إِنَّ | فِي ذَٰلِكَ | لَآيَةً | لِّقَوْمٍ |
| په سبب دهغې | چې ظلم کوؤ هغوئ | بیشکه | په دې کار کښې | یوه نښه ده | دپاره دهغه قوم |

دکفر په وجه کنډر پراته دی | بیشکه په دې کښې پوهه خلقو دپاره دعبرت نښه ده|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَعْلَمُونَ۝ | وَأَنجَيْنَا | الَّذِينَ | آمَنُوا | وَكَانُوا |
| چې پوهه لري | اوخلاصې ورکړو مونږ | هغه کسانوله | چې ایمان ئې راوړې وؤ | اووْ هغوئ |

.........او څوک چې ایمان دار او پرهیزګار ووا هغوئ ته مو نجات ورکړو

| |
|---|
| يَتَّقُونَ۝ |
| چې ځان ئې ساتلو دنافرمانئ نه |

قوله تعالی:-وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ۝

**دثمودیانونهه بدمعاشیان او دهغوئ فسادونه اودهغوئ هلاکت:-** دثمودیانوپه ښارکښې نهه فسادیان سړي ووچه دهغوی په طبیعت کښې دسره اصلاح هم نه وه.هم دا دهغوی مشران اوسرداران وو.هم ددوی په مشورې اوحکم سره اوښه وژلې شوې وه.دهغوی نومونه دادی ([1]).دعمی،دعیم،هریم،داب، صواب، مستع،ریاب،قدار ابن سالف. هم دا آخری سړې هغه دې چه پخپل لاس سره ئې داوښې خپې ماتې کړې وې چه ددې بیان په ﴿ فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ ﴾ او آیت ﴿اشقاها﴾ کښې دې.هم داهغه خلق وو.چه د درهم سکه به ئې لرې شان تراشله اودا به ئې چلوله.سکې کټ کول هم یوقسم فساد دې.په ابوداوُد وغیره کښې حدیث دې چه هغې کښې بغیرضرورت نه هغه سکه کټ کول کومه چه مسلمانانوکښې چلیږی نبی کریمﷺ منع فرمائیلی دی([2]).غرض داچه ددوی دا فسادهم وو.او نور فسادونه ئې هم ډیرزیات وو.دا ناپاکه ډله یو ځائې شوه.مشوره ئې اوکړه چه نن شپه صالح او دهغهٔ کورنئ قتل کړئ.په دې باندې ټولو قسمونه واخستل.اومضبوط لوظ او وعده ئې اوکړه.لیکن حضرت صالحؑ ته د رسیدلونه مخکښې دې خلقوته دالله تعالی عذاب راورسیدلو.او دوی ئې تباه کړل.د پورته نه یو لوئې ګټ راوْرغړیدلو او ددې ټولو سردارانو سرونه مات شول.ټول په یوځل مړهٔ شول.ددوی حوصلې ډیرې زیاتې شوې وې. خاصکر کله چه دوی دحضرت صالحؑ اوښه قتل کړله.اووې لیدل چه هیڅ عذاب رانغلو.نو اوس دالله تعالی نبی قتلولوباندې راضی شول.مشورې ئې اوکړلې.چه چپ چاپ ناڅاپه هغه او دهغهٔ بال بچ هلاك کړئ. دهغهٔ والی، وارثان اوقوم ته اووایئ چه مونږڅه خبریو.که صالحؑ نبی وی.نوهغهٔ ته زمونږلاس نه شی رسیدلې.ګنی هغه هم دهغهٔ اوښې سره مړکړئ.په دې ارادې سره روان شول.هم په لاره کښې ووچه فرښتې په کاڼړی دهغوی ټولو دماغ ټکړې ټکړې کړل.دهغوی په مشوروکښې چه نورکوم جماعت شریك وو.هغوی چه کله اولیدل.چه دهغوی دټلو موده اوشوه.او واپس رانغلل.نو دوی خبر اخستلو دپاره روان شو. وې کتل چه دټولو سرونه چاوْدلی دی.مازغه ئې ویستلې پراته دی.اوټول مړهٔ دی. هغوی په حضرت صالحؑ باندې ددوی دقتل الزام اولګولو.او دهغوی د وژلو دپاره پورته اوختل. لیکن دهغهٔ قوم وسله بند راغلل وې ونیل.اوګورئ دوی تاسوته وئیلی وو.چه درې ورځوکښې به دالله تعالی عذاب په تاسوباندې راځی.تاسو دې درې ورځو تیریدو پورې انتظار اوکړئ.که دې رښتونې دې نودهٔ په قتلولوبه الله تعالی نورهم ناراضه کړئ.او ډیر سخت عذاب به راشی.اوکه دې دروغژن دې. نو

---

[1] الطبری : ۴۷۷/۱۹.

[2] ابوداود کتاب البیوع باب فی کسر الدرهم : ۳۴۴۹..

بیابه ستا دلاس نه بچ چرته لاړشي؟ نوهغه خلق لاړل.یقینا هغوی ته حضرت صالحؑ صفا فرمائیلی وو چه تاسودالله تعالی اوښه قتل کړې ده.نو تاسو درې ورځو پورې مزې واخلئ.بیابه دالله تعالی رښتوني وعده پوره کیږي.دې خلقو دحضرت صالحؑ دژبې نه دې اوریدوسره اوونیل.دې خو دومره موده ښائي راځي چه مونږهم نن ددهٔ نه فارغ شو.دکوم کاڼږي نه چه اوښه راوتلې وه.هم په هغه غر باندې دحضرت صالحؑ یو جمات وو.چه هلته به صالحؑ مونځ کولو.هغوی مشوره اوکړله.چه کله هغه مانځهٔ له راشي.هم هغه وخت ئې په لاره کښې مړکړئ.کله چه غرته اوختل.نووې کتل چه د پورته نه یو لوئې کټ رارغړیدونکې راروان دې. د هغې نه پټیدو دپاره یوغارکښې پټ شول.کټ راغې د غار په خُله کښې داسې اودریدلو.چه خُله ئې بالکل بنده شوه.ټول په ټوله هلاک شول.اوچاته پته هم اونه لګیده چه چرته لاړل؟ دلته په دوی باندې دا عذاب راغې.هلته باقي خلق هم هلته هلاک کړې شول.نه د هغوی خبر دوی ته اوشو،نه ددوی خبرهغوی ته.دحضرت صالحؑ اوایماندارو خلقوچاهیڅ نقصان هم اونکړو.اوخپل خانونه ئې دالله تعالی عذابونوته اوغورزول.هغوی چل اوکړو.مونږ دهغوی د چال بازئ مزه هغوی ته اوڅکوله.اوهغوی ته ددې نه لږمخکښې هم هیڅ علم اونه شو. دهغوی د دهوکه بازئ آخری انجام داشوچه ټول په ټوله تباه او برباد شول.دادې دهغوی کلې چه وران پراته دی.دهغوی دظلم په وجه هغوی هلاک شول.دهغوی رونق دار ښارونه تباه کړې شو.

| |
|---|
| وَلُوۡطًا اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهٖۤ |
| او(اولیږومونږ) لوط \| کله چې \| اوونیل هغه \| قوم خپل ته |
| اومونږ لوطؑ اولیږلو څه وخت چې هغه خپل قوم ته اوونیل ............... |
| اَتَاۡتُوۡنَ الۡفَاحِشَةَ وَاَنۡتُمۡ تُبۡصِرُوۡنَ اَئِنَّكُمۡ |
| ایا راځئ تاسو \| د بې حیایئ کار ته (بدکارئ ته) \| او تاسو \| ورته ګورئ \| ایا تاسو |
| چې دا تاسو څه دبې حیایئ کار کوئی \| حال دا چې تاسو وینئ ګورئ \| ........ ایا تاسو |
| لَتَاۡتُوۡنَ الرِّجَالَ شَهۡوَةً مِّنۡ دُوۡنِ النِّسَآءِ ؕ بَلۡ |
| خامخا راځئ \| سړو ته \| دپاره دشهوت \| په ځای دښځو (یا غیر دښځو نه) \| بلکه تاسو |
| د هلکانو نه خپل شهوت پوره کوئ \| چې ښځې مو پریخودی دی \| حقیقت دادې چې تاسو |
| اَنۡتُمۡ قَوۡمٌ تَجۡهَلُوۡنَ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوۡمِهٖۤ اِلَّاۤ |
| یو قوم یئ \| چې سخت دجهالت کار کوئ \| پس نه وو \| جواب \| دقوم دهغه \| مګر |
| ډیر جاهل قوم یئ انو دهغې قوم نه بل هیڅ جواب اونشو \| خو دا ئې اوونیل |
| اَنۡ قَالُوۡۤا اَخۡرِجُوۡۤا اٰلَ لُوۡطٍ مِّنۡ قَرۡيَتِكُمۡ ۚ اِنَّهُمۡ |
| داچې \| وې ونیل \| چې اوباسئ \| اهل خانه دلوط \| دکلي ستاسو نه \| بیشکه دوئ |
| چې دلوط خپلوان دخپل کلي نه بهر اوباسئ \| .................دوئ خپل خانونه |
| اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوۡنَ فَاَنۡجَيۡنٰهُ وَاَهۡلَهٗۤ |
| داسې خلق دی \| چې خانونه پاک ساتي \| پس خلاصې ورکړو مونږ هغه له \| او کوروالو دهغه ته |
| پاک پاکیزه ښکاره کوي \| ..........نومونږ هغه او دهغه خپلوان بچ کړل \| سوا ددهٔ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِلَّا امْرَاَتَهٗ | قَدَّرْنٰهَا | مِنَ الْغٰبِرِيْنَ﴿۵۷﴾ | وَاَمْطَرْنَا |
| مگر نهٔ ښځې دهغه ته | چې فيصله کړې وه مونږه دهغې | دباقي پاتې کيدونکو نه | او رااوروؤ مونږ |
| دښځې نه دکومې په حق کښې چې مونږ مقرر کړې وه | چې ورستو پاتې کيدونکو نه به وی | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِمْ | مَّطَرًا | فَسَآءَ | مَطَرُ | الْمُنْذَرِيْنَ﴿۵۸﴾ | قُلِ |
| په هغوئ باندې | باران دکاڼو | پس ډير خراب وؤ | باران | ديرول کړې شوؤ | اووايه اے نبي |
| او په هغوئ مو بل قسم باران اوورولو | نو د يرولې شوو خلقو څومره خراب باران وو | | | | ته اووايه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْحَمْدُ | لِلّٰهِ | وَسَلٰمٌ | عَلٰى عِبَادِهِ | الَّذِيْنَ | اصْطَفٰى ط |
| ثناده | الله لره | او سلام دې | په بندګانو دهغه باندې | هغه | چې غوره کړې دی الله |
| ټول تعريفونه د الله ﷻ دپاره دی | اودهغه په منتخب شوو بندګانو دې سلام وی | | | | ايا الله ﷻ غوره دې |

| | | | |
|---|---|---|---|
| آٰللّٰهُ | خَيْرٌ | اَمَّا | يُشْرِكُوْنَ﴿۵۹﴾ ط |
| ايا الله | بهتر دې | که هغه معبودان | چې د دوئ نې شريکوی دهغه سره |
| که هغه څيزونه چې دوئ نې ورسره دخانه شريکوی | | | |

**قوله تعالى:- وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ**

**دلوط ﷺ قوم ته نصيحت اودفعلئ نه منع کول:** الله ﷻ دخپل بنده اورسول حضرت لوط ﷺ واقعه بيانوی.چه هغوی خپل اُمت يعنی قوم دهغوی په ناکاره کارباندې اويرول.چه دهغې کونکې دهغوی نه مخکښې هيڅوك نه وو تيرشوې.يعنی اغلام بازئ باندې نې اويرول.دټول قوم داحالت وو.سړوبه سړونه او ښځو به ښځونه شهوت پوره کولو.دې سره دومره بې حياشوی وو.چه دا ناکاره کار نې پټول هم څه دومره ضروری نه ګڼړل.په خپلومجلسونوکښې به نې دا بدکارکولو.ښځې به نې پرينبودلې سړوته به راتلل.په دې وجه حضرت لوط ﷺ اوفرمائيل.چه دخپل دې جهالت نه منع شئ تاسو خودومره تيرشوی او ناپوهه شوئ چه شرعی پاکوالی سره ستاسونه طبعی پاکوالې هم اووتلو.لکه چه دويم آيت کښې دی.﴿اَتَاْتُوْنَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعٰلَمِيْنَ﴾الخ. آيا تاسو سړوته راځئ اوښځې پريږدئ کومې چه الله تعالی ستاسو بيبيانې جوړې کړې دی؟ بلکه تاسو دحد نه زياتې کونکې خلق يئ.

**قوله تعالى:- فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖۤ**

**لوط ﷺ ته د قوم جاهلانه جواب:-** دقوم جواب ددې نه سواهيڅ نه وو.چه هرکله لوط اودلوط منونکی خلق ستاسوددې کارنه بيزاره دی.اوهغوی نه ستاسو منی.اونه تاسو دهغوی.نو بيا دهميشه دا جنګ جهګړې اوبکواس ولې نه ختموئ.د لوط(ﷺ) کورنئ دوطن نه اوباسئ.دهغوی د روزانه جهګړونه نجات حاصل کړئ.

**د قوم د فعلئ انجام:-** کله چه کافرانو پخه اراده اوکړله.اوپه دې باندې کلك شول.او متفق شول.نوالله ﷻ هغوی هلاك کړل.اوخپل بندګان حضرت لوط ﷺ او دهغهٔ اهل نې دهغوی نه اوکوم عذاب چه په هغوی راغلو دهغې نه بچ کړل.البته دهغهٔ ښځه چه هغه دقوم سره ملګرې وه.هغه دمخکښې دغه هلاکيدونکو کښې ليکلې شوې وه.اوهغه دلته پاتې شوه اوعذاب سره تباه شوه.ځکه چه هغې به هغوی ته دهغوی په دين اودهغوی په طريقوکښې مدد ورکولو.دهغوی بدکارونه نې خوښول.هم هغې دحضرت لوط ﷺ د ميلمنو خبرقوم ته ورکړې وو.ليکن دا خيال ساتئ چه دهغوی په بدکارئ دا شريکه نه وه.دالله تعالی د نبی دعزرګئ خلاف دی.چه دهغهٔ ښځه بدکاره وی. دې قوم باندې دآسمان نه کاڼړی راؤ ورولی شو.چه

په هغې باندې دهغوی نومونه ليکلی شوی وو.په هريو باندې دهغهٔ دنوم کانړې راغې.او يوهم دهغوی نه بچ نه شو.دظالمانونه دالله تعالی عذاب لرې نه دې. په هغوی باندې دالله تعالی حجت قائم شوې وو.هغوی نې اويرول.او دهمکيانې نې ورکړې وې.تبليغ د رسالت ډير حده پورې شوې وو.ليکن هغوی په مخالفت کښې،دروغ گنړلوکښې،اوپه خپله بې ايمانئ باندې کلك اودريدوکښې کمی اونکړه.دالله تعالی نبی حضرت لوطﷺ ته نې تکليفونه اورسول.بلکه دهغوی د ويستلو اراده نې اوکړله.هم دغه وخت دې لونې باران دې کانړو وريدلو هغوی ختم کړل.

**قوله تعالی:- وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهٖ**

**دالله ﷻ په نيکانو بندگانو باندې سلام ليږلې** :نبی کريمﷺ ته حکم ورکولې شی چه ته اووايه چه د ټولو تعريفونولائق صرف الله ﷻ دې. هم هغه خپلو بندگانوته بې شميره نعمتونه ورکړی دی.دهغهٔ صفتونه ډيراوچت دی.دهغه نومونه اوچت اوپاك دی.اوحکم ورکولې شی چه ته دالله ﷻ په غوره بندگانو باندې سلام اوليږه.لکه انبياءاو رسولان،حمد اوصلواة سره ذکرپه آيت ﴿سُبحَانَ رَبِّكَ﴾ الخ. کښې هم دې.

**قوله تعالی:- اصْطَفٰى**

**ددې نه مراد څوک دی:-** دغوره بندگانونه مُراد اصحاب د رسول دی.اوبخپله انبياء عليهم السلام په طريقه اولی په دې کښې داخل دی.الله تعالی دخپلو نبيانو او دهغوی دتابعدارو بچ کولو اود مخالفينو د تباه کولو نعمت بيان کړو.اودخپل تعريف کولو اوپه خپلو نيکانو بندگانو باندې دسلام ليږلوحکم نې ورکړو.ددې نه پس دسوال په طورنې د مشرکانو ددې کارنه انکار اوکړو.چه هغوی اللهﷻ سره دهغهٔ په عبادت کښې نور شريکوی.

الحمد لله نورلسمه پاره ختمه شوه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمَّنۡ | خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | وَالۡاَرۡضَ | وَاَنۡزَلَ | لَكُمۡ |
| آيا هغه څوك | چې پيدا كړي ئې دي | آسمانونه | او زمكه | او راوې وروليې | ستاسو دپاره |
| كه هغه پاک ذات چې آسمانونه او زمكه ئې پيدا كړي دي \| اوچا چې د آسمان نه ستاسو دپاره | | | | | |
| مِّنَ السَّمَآءِ | مَآءً | فَاَنۡۢبَتۡنَا | بِهٖ | حَدَآئِقَ | ذَاتَ بَهۡجَةٍ |
| داسمان نه | اوبه | پس زرغون كړل مونږه | په دغه اوبو سره | باغونه | تازګئ والا (ښائيسته) |
| باران اوورولو \| نوبيا مونږ د هغې (د اوبو) په ذريعه ښائسته باغونه رازرغون كړي دي | | | | | |
| مَا كَانَ | لَكُمۡ | اَنۡ تُنۡۢبِتُوۡا | شَجَرَهَا | ءَاِلٰهٌ | مَّعَ اللّٰهِ |
| نه وو | طاقت تاسو لره | چې زر غون كړئ | ونې دهغې | آيا شته معبود (بل) | دالله سره |
| داستاسو د طاقت خبره نه وه\|چې دهغې باغونوونې مو زرغون كړي وې\|آيادالله سره بل معبود هم شته؟ | | | | | |
| بَلۡ هُمۡ | قَوۡمٌ | يَّعۡدِلُوۡنَ﴿۶۰﴾ | | | |
| بلكه دا خلق | داسې قوم دي | چې ځنګ كوي دحق نه | | | |
| (نه) بلكه دا هغه خلق دي چې د حق نه ډډه كوي | | | | | |

**قوله تعالى:- اَمَّنۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ**

**حقيقي خالق دهرڅه صرف الله ﷻدي**:-بيان كولې شي چه د ټول كائنات آبادونكې د ټولو پيدا كونكې ټولوته رزق وركونكې دټولوحفاظت كونكې د ټول جهان تدبيركونكې صرف هم يوالله تعالى دي.دا اوچت آسمان اودا پړقيدونكي ستورى هم هغه پيدكړي دى. دا درنه زمكه اوداداوچتو څوكو غرونه او دا خوارد كړې شوى ميدانونه هم هغه پيداكړي دى. پتې باغونه ګلونه ميوې دريابونه سمندرونه ځناور پيريان انسانان د اوچې اولمدې عام ځناور داټول هرڅه هم دغه يو الله تعالى پيداكړي دى. د آسمانونو نه اوبه رانازلونكې هم دغه يوالله تعالى دې دائى دخپل مخلوق د رزق ذريعه هم جوړه كړې ده.باغونه پتې هرڅه هم هغه راټوكوى چه د ښائسته ښكاريدو سره ډيرې فائده مند هم دى. د مزيدار خوندسره سره د ژوندقائم ساتلو پاره دى.تاسونه يا ستاسودباطلو معبودانونه هيڅ يوهم نه دڅه څيزد پيدا كولو قدرت لرى اونه د يوې ونې د راټوكولو. بس هم هغه خالق اورازق دې.

**دالله ﷻ دخالقيت مشركان هم قائل وو خو عبادت يې د بل چا كولو**:-د الله ﷻخالقيت اود هغه روزى رسول مشركانوهم منله. لكه چه بل آيت كښې ارشاد دي﴿وَلَئِنۡ سَاَلۡتَهُمۡ مَّنۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَسَخَّرَ الشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ لَيَقُوۡلُنَّ اللّٰهُ ۚ فَاَنّٰى يُؤۡفَكُوۡنَ﴾[1] يعنى كه ته ددوى نه تپوس اوكړې چه هغوى چاپيداكړي دى؟نوبيابه د دوى هم دغه جواب وى چه الله ﷻ.غرض داچه دوى پيژنى اودوى منى چه خالق كل صرف هم الله ﷻ دې خود دوى عقلونه كارنه كوى چه د عبادت په وخت كښې الله تعالى سره نورهم شريك كوى سره ددې چه ښه پوهيږى چه نه هغوى پيدا كونكى دى اونه رزق وركونكى دى.اود دې خبرې فيصله خو په آسانئ سره هريوعقل مندكولې شى چه د عبادت لائق هم هغه دې كوم چه خالق مالك او رزاق دې. پدې وجه په دې آيت كښې دلته داسوال اوكړې شو چه معبود برحق سره نور هم څوك په عبادت كښې لائق شته؟ آيا الله ﷻ سره د مخلوق په پيداكولوكښې رزق وركولوكښې بل هم څوك شريك دې؟ دغه مشركانو خالق اورازق هم الله تعالى منلو اوعبادت به ئى د نوروكولو.

[1]) ٤٣/الزخرف:٨٧.

د دې وجه په بل آيت کښې ارشاد دې ﴿اَفَمَنْ يَّخْلُقُ كَمَنْ لَّا يَخْلُقُ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ۝﴾ [1] خالق اوغيرخالق يوشان نه دي بياتاسو خالق اومخلوق څنګه يوشان کوئی؟ دا يادساتئی چه په دې آياتونو کښې ﴿اَمَّنْ﴾ کوم کوم ځائ کښې هم دې نوهلته هم دغه معنی ده چه يوخو هم هغه دې چه دا ټول کارونه کولې شي او په دې باندې قادر وی بل هغه چه هغه په دې کښې يوکارهم نه وی کړې اونه کولې شی آيادا دواړه برابريدلې شي؟ لکه چه بل شق په لفظونو کښې بيان نه کړې شو خود کلام طرز دابنکاره کوی.

يوبل آيت کښې ښکاره ښکاره داهم دی چه ﴿آٰللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ۝﴾ [2] آيا الله تعالی بهتردې که هغه چه کوم دوی شريکان کړی دي؟د آيت په خاتمه باندې فرمائی بلکه داهغه خلق دی چه الله ﷻ سره شريك ګرځوی آيت ﴿اَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ اٰنَآءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَّقَآئِمًا يَّحْذَرُ الْاٰخِرَةَ وَيَرْجُوْا رَحْمَةَ رَبِّهٖ ؕ قُلْ هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ؕ اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ۝﴾ [3] هم د دې آيت په شان دې يعنی يوهغه سړې چه په خپل زړه کښې د آخرت ويره لری د خپل رب د رحمت طمع لری شپې په مونځونوکښې تيروی نوهغه د هغه چا په شان نه شی کيدې د چا اعمال چه داسې نه وی.

بل ځائ دی چه عالم او بې علمه برابرنه دی. هم عقل مندد نصيحت نه فائده اوچتوی اود چا سينه چه د اسلام د پاره کولاوشوې وی اوهغه د خپل رب نه نور اوهدايت اخستې وی هغه د ده په شان نه دې د چا په زړه کښې چه د اسلام د طرف نه انديښنه وی اوزړه ئی سخت وی.الله ﷻ پخپله د خپل ذات باره کښې فرمائيلې دی ﴿اَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ۚ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ ؕ قُلْ سَمُّوْهُمْ ؕ اَمْ تُنَبِّئُوْنَهٗ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى الْاَرْضِ اَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ؕ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوْا عَنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ۝﴾ [4] يعنی چه هغه د مخلوق دهرهر حرکت اوکارنه خبروی تولې د غيبو خبرې پيژنی په مثال دهغه دې چه هيڅ هم نه پيژنی؟ بلکه د چا چه هډوسترګې اوغوږونه نه وی لکه ستاسودا بتان.

ارشاد دې ﴿وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ ؕ قُلْ سَمُّوْهُمْ ؕ اَمْ تُنَبِّئُوْنَهٗ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى الْاَرْضِ اَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ؕ بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوْا عَنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ۝﴾ [5] دوی الله تعالی سره شريکان جوړوی دوی ته اووايه لږ شان د هغه نومونه خو ماته اوښايه نود دې ټولوآياتونوهم دغه مطلب دې چه الله تعالی خپل صفتونه بيان کړی دی او بيانی دا خبر ورکړې دې چه دا صفتونه په چا کښې هم نشته.

| |
|---|
| اَمَّنْ جَعَلَ |
| آيا هغه څوك دې \| چې جوړه ئې کړه \| |
| ............ بلکه هغه ذات چې زمکه ئې |
| الْاَرْضَ قَرَارًا وَّجَعَلَ خِلٰلَهَآ اَنْهٰرًا وَّجَعَلَ لَهَا |
| زمکه \| خائي دقرار \|او جوړ ئې کړل \| په منځ دهغې کښې \| نهرونه \|او جوړ ئې کړل \| دې زمکې لره |
| د قرار خائي ګرځولې دې \| او په دې کښې دننه ئې نهرونه جارې کړل \| او ددې (دمضبوطتيا) دپاره ئې |

[1] ۱۶/النحل:۱۷.
[2] ۲۷/النمل:۵۹.
[3] ۳۹/الزمر:۹.
[4] ۱۳/الرعد:۳۳.
[5] ۱۳/الرعد:۳۳.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَوَاسِيَ | وَجَعَلَ | بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ | حَاجِزًا ؕ | ءَاِلٰهٌ | مَّعَ اللّٰهِ ؕ | |
| درانهٔ غرونه | او جوړه يې کړه | په منځ ددوو دريابونو کښې | پرده | ايا شته بل معبود | دالله سره | |
| غرونه جوړ کړل او د دوو دريابونو ترمينځه ئې پرده اوګرځوله \| ايا دالله ﷻ سره بل معبود شته | | | | | | |
| بَلْ اَكْثَرُهُمْ | لَا يَعْلَمُوْنَ ؕ | اَمَّنْ | يُّجِيْبُ | الْمُضْطَرَّ | | |
| بلکه زيات خلق ددوئ | نه پوهيږي | ايا څوك دي هغه | چې قبلوي | دعا دبې قراره سړي | | |
| (بيخي نشته) خو په دوئ کښې زيات خلق نه پوهيږي \| که هغه ذات چې د بې قراره بنده دعا اوري | | | | | | |
| اِذَا | دَعَاهُ | وَيَكْشِفُ | السُّوْٓءَ | وَيَجْعَلُكُمْ | خُلَفَآءَ | |
| کله چې | دعا اوغواړي دهغه نه | او لرې کوي | هغه تکليف | او جوړوئ تاسو | خليفګان | |
| کله چې هغه ورته بلنه کوي \| اومصيبت لرې کوي \| اوتاسو ئې په زمکه کښې خليفګان جوړ کړي يئ | | | | | | |
| الْاَرْضِ ؕ | ءَاِلٰهٌ | مَّعَ اللّٰهِ ؕ | قَلِيْلًا | مَّا تَذَكَّرُوْنَ ؕ | | |
| دزمکې | ايا شته بل معبود | دالله سره | ډير لږ شان | نصيحت قبلوئ تاسو | | |
| ...........ايا دالله ﷻ سره بل معبود شته (نه نشته) \| خو تاسو ډيرکم نصيحت قبلوئ \| | | | | | | |

**قوله تعالى:- اَمَّنْ جَعَلَ الْاَرْضَ قَرَارًا**

**زمکه نهرونه غرونه سمندرونه هم الله ﷻ پيداکړي دي:** زمکه الله ﷻ ولاړه اوساکن پيدا کړه چه دنيا په آرام سره خپل ژوند تيرکړې شي اوپه دې خورشوی فرش باندې راحت حاصل کړې شي. لکه چه بل آيت کښې دي ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚ فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ﴾[1] الله تعالى زمکه ستاسود پاره ولاړه اوساکنه جوړه کړه اوآسمان ئې چت جوړکړو. هغه په زمکه باندې داوبودريابونه اوبهيول چه اخوادېخوابهيږي اوملك ملك ته رسي زمکه خړوب کوي دې دپاره چه په زمکه باندې پټې اوباغونه راوټوکيږي.هغه د زمکې مضبوطيادپاره په دې کښې د غرونو ميخونه ورخښ کړل چه هغه خوزيدې راخوزيدې نشي اوولاړه وي.دهغه قدرت ته اوګوره چه يوتريخ سمندردې او يوخوږ دواړه بهيږي په مينځ کښې هيڅ څيز د بنديز يا حجاب اوپرده نشته خوقدرت يود بل نه جداساتلي دي نه تريخ په خوږکښې اونه خوږ په تريخ کښې شامليدلې شي.ترخې اوبه خپلې فاندې ورکوی اوخوږې خپلې. ددې چهانړکړې شوې خوند ناکې مزيدارې اوبه خلق څکی او په خپل خناوروباندې هم څکوی فصلونوباغونو اوباړو وغيره ته دااوبه رسوی لامبل وينځل وغيره.ترخې اوبه د خپلې فاندې نه خلق سودمندکولوسره داد هرطرف نه راګيرې شوی دی دې دپاره چه هواخرابه نه شي.

په يوبل آيت کښې هم د دې دواړو بيان شوې دې ﴿وَهُوَ الَّذِيْ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَّهٰذَا مِلْحٌ اُجَاجٌ ۚ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَّحِجْرًا مَّحْجُوْرًا﴾[2] يعنی ددې دواړو سمندرونو روانونکې هم الله تعالى دې اوهم هغه د دې دواړو په مينځ کښې حداو فاصله کيخودې ده. دلته خپل داقدرتونه خودلوسره بياسوال کوی چه آياالله تعالى سره بل هم څوك شته چاچه دا کارونه کړی وی يائی کولې شي؟دې دپاره چه هغه هم د عبادت لائق اوګنړلې شي.اکثر خلق صرف په بې علمئی سره د غيرالله عبادت کوی.دعبادتونولائق خو صرف هم هغه يوالله تعالى دې.

---

[1] ٤٠/المؤمن: ٦٤.
[2] ٢٥/الفرقان: ٥٣.

**قوله تعالى:-** أَمَّنْ يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ
**د دردمندو بې کسوغريبانانودعا څوک اوري؟** په سختواو مصيبتونوکښې د رابللو قابل هم هغه ذات دې د بې کسه اوبې وسه خلقوآسراهم هغه دې.پريوتلي هيرکړې شوي دهوکه شوي اوپه مصيبت کښې اخته شوي هم هغه ته چغې وهي اوهم دهغه طرف ته خيال ساتي.لکه چه ارشاد دې چه تاسو کله د سمندرطوفان د ژوندون نه نااميده کړى نو هم هغه ته آوازونه کوئى اود هغه طرف ته ژړاګانې او زارئى کوئى اوټول هيروني.دهغه ذات داسې دې چه هريوناقراره هغه سره پناه اخستې شى.د مصيبت وهونکو خلقو مصيبت بغيرد هغه نه هيڅ څوک نه شى لرې کولې.
**د يو سړى په تپوسونو د رسول کريم ﷺ هدايات:-** يوسړى رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو يارسول الله ﷺ ته مونږ د کوم څيز طرف ته رابلې؟حضورﷺ اوفرمائيل چه د الله تعالى طرف ته چه يواځې دې د چا چه څوك شريك نشته چه په هغه وخت کښې ستا په کار راځى کله چه ته په څه لاتجه کونجه کښې اينختې نى.هم هغه ذات دې چه کله ته په څنګلونوکښې لار هيره کړې نوهم هغه ته آوازکوې نوهغه ستا لارخودنه اوکړى که ستاڅوك ورك شوى وى اوته هغه ته سوال اوکړې نو هغه به تاهغه سره ملاو کړى. که قحط راغلې وى نوته د هغه نه دعاکوه نوهغه به تاباندې يوشان باران راووروى. هغه سړي ونيل يارسول الله ﷺ ماته څه نصيحت اوکړه. حضورﷺ اوفرمائيل چاته بدردمه وايه د نيکئى هيڅ يوکار سپك او بې فائدې مه ګڼره که د خپل مسلمان رور سره په رونړتندى باندې ملاويدل ولې نه وى. که په خپله ډولچه باندې يوتګى باندې اوبه څکل ولې نه وى. خپل تهبند د پنډئى د نيمئى پورې ساته که نه وى نوزيات نه زيات د ګيټوپورې د دې نه زيات زوړندولونه ځان بچ ساته ځکه چه دافخراوغرور دې کوم چه الله تعالى نه خوښوى (¹)
**بل روايت کښې نور هدايات:-** په يوروايت کښې د هغه نوم جابربن سليم هجيمى ﷺ دې. په دې کښې دى چه کله زه حضورﷺ له راغلم حضورﷺ په څادر باندې ډډه لګولې وه ناست وودکوم پلاوونه چه د حضورﷺ په قدمونومبارکو باندې پراته وو. زه راغلم تپوس مې اوکړو په تاسو کښې د الله تعالى رسول ﷺ کوم يودې؟ حضورﷺ په خپل لاس مبارك خپل ځان ته اشاره اوکړه.ماوئيل يارسول الله ﷺ زه د يوکلي اوسيدونکې يم څه ادب اوتميزوغيره نه پيژنم ماته د اسلام د احکامو څه تعليم راکړه. حضورﷺ اوفرمائيل چه يوه وړوکې غونډې نيکى هم سپکه مه ګڼره که دخپل مسلمان رورسره دې په خوشحالئى ملاقات اوکړو اوکه د خپلې ډولچې د اوبوغوښتونکى له په لوښى کښې لږې شان اوبه ورکړى.که څوك ستاداسې څه خبره پيژنى اوهغه تاته په دې خبره څه شرم درکوى نوهغه له داسې په دې خبره باندې شرم مه ورکوه دې د پاره چه اجر ملاوشى اوهغه ګناهګار جوړشى د ګيټونه لاندې کپړه زوړندلو نه بچ شه ځکه چه دا کبر دې اود الله تعالى خوښ نه دې. هيڅ چاته هم کنځلې مه کوه. فرمائى د دې اوريدو نه پس ما چرته يوانسان خوڅه بلکه يوځناور ته هم کنځلې نه دى کړې (²)
**بيمار لره بيمارئى کښې خپل ځان دپاره دعا ګول پکار دى:-** س طاؤس د يوبيمارپوښتنې له لاړو بيمار ونيل زما د پاره د الله تعالى نه دعااوکړه هغوى اوفرمائيل ته پخپله ځان ته دعااوکړه د بې قراره دهې قرارئى په وخت کښې دعاالله تعالى قبلوى.وهب رحمه الله فرمائى چه ما په وړاندينى آسمانى کتاب کښې لوستلي دى چه الله ﷻ فرمائى زمادې په خپل عزت باندې قسم وى کوم سړې چه په ماباندې باور اوکړى اوما اونيسى نوزه به هغه د ده د مخالفينونه بچ کړم اوخامخا به نى بچ کوم. سره د دې که د زمکې اوآسمانونوټول مخلوق د ده په مخالفت باندې اوده ته په تکليف رسولوباندې راجمع شى او څوك چه په

¹) احمد:۵/۶۴ ح۲۰۶۳۶ وسنده صحيح.(مسند احمد)
²) ابوداؤدکتاب ا للباس باب ماجاء في اسبال الازار:۴۰۸۴ وسنده صحيح، السنن الکبرى للنسائى:۹۶۹۴، احمد:۵/۶۴، ابن حبان:۵۲۱

مابانديې يقين اونه کړي زما په پناه کښې رانه شي نو هغه به زه د امن اوامان نه اخواکړم اوکه غوارم نو په زمکه کښې به نې دننه کړم اود هغه به هيڅ امداد نه کوم.

**يوه ډيره عجيبه واقعه**:يوه ډيره عجيبه واقعه حافظ ابن عساکر رحمه الله خپل کتاب کښې نقل کړې ده.يو صاحب فرمائي مابه په يوقچر باندې خلق ددمشق نه زيداني ته اوړل اوهم په دغه کرايه باندې زما وخت تيريدلو.يوځل يوسړی قچرپه کرايه واخستوماهغه سورکړو اولاړم. يو ځاځ کښې دوه لارې راغلې نوهغه وئيل په دې لار لاړشه. ماوئيل زه د دې لارې نه واقف نه يم نيغه لار داده هغه وئيل زه پوره واقف يم داډيره نيزدې لار ده. زه د هغه په وينا هم په هغه لار لاړم. لږ ساعت په ما اوکتل چه يو خوشې تشې ميدان ته مونږ راورسيدو چرته چه هيڅ لار نه ښکاريده يوډير خطرناك ځنګل وو او هر طرف ته مړي پراته وو.زه غلې شوم هغه وئيل لږه دا واګه اونيسه زه هم دلته کوزيږم. ما واګه اونيوله هغه راکوز شو او خپل تهبند نې اوچت کړواوکپړې ټيك کړې اوچاړه نې راواويستله او په ما نې حمله اوکړه. ما د هغه ځاځ نه رامنډه کړه خو هغه ماپسې شو اوزه نې راونيولم. ما هغه ته قسمونه ورکړل خو هغه هيڅ خيال اونه کړو.ما وئيل چه ښه ده قچر اوداټول سامان چه ماسره دې دا ته واخله خو ماپريږده. هغه وئيل چه داخوزما شو ولې زه تاهم ژوندې نه پريخودل غوارم. ما هغه ته د الله تعالی نه ويره ورکړه. د آخرت د عذابونو ذکر مې ورته اوکړو خو دې څيز په هغه باندې هيڅ اثراونه کړو. هغه زما په قتل کولوباندې کلك ولاړ وو.زه نااميده شوم اودمرګ د پاره تيارشوم اوهغه ته مې سوال اوکړوچه مايودوو رکعتو مونځ له پريږده. هغه وئيل ښه ده زر کوه ما مونځ کول شروع کړو خو د رب قسم زماد ژبې نه يوحرف نه وتلو هسې مې داسې لاسونه تړلې ويريدلې ولاړووم او هغه به تندی کوله. هم هغه وخت اتفاقي زما په خله باندې داآيت راغلو [أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَاءَ الْأَرْضِ ۗ أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ ۚ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ] ([1])يعنی هم الله تعالی دې چه د بې قرارئې نه د بې قرارئې په وخت کښې دعاأوري او قبلوي اوبې وسی او سختئ لرې کوي.بس دا آيت زما د خلې نه وتل وو چه ما اوکتل د ځنګل په مينځ کښې يوپه اس سورخپل اس په تيزئې سره زغلولوسره زمونږ طرف ته راروان دې په لاس کښې نې نيزه هم نيولې ده او بغيرد څه وينا کولونه نې هغه نيزه د ډاکو په خيټه کښې ورخښه کړه چه د هغه د ګرګس نه پورې راپورې اوتله اوهم هلته بې ځانه شو راپريوتلو.سور واګه تاو کړه او روانيدل نې غوښتل خو زه د هغه په پښو پورې اونختلم او بې حاله (په عاجزئې سره او اصرار کولو سره) د الله تعالی د پاره دومره خو راته اووايه چه ته څوك نې؟ هغه وئيل زه د هغه ذات راليګلې شوې يم چه د مجبورو بې کسو او بې وسودعاقبلوي اومصيبت اوآفت اخواکوي.ما د الله ﷻ شکر ادا کړواوخپل قچراوسامان مې راواخستلو او صحيح سالم واپس راغلم.

**بله واقعه**:- دغه شان يوه بله واقعه هم ده چه د مسلمانانولښکرد کافرانونه ماتې اوخوړله او واپس شو. په دوی کښې يو مسلمان چه ډير سخی وو موجود وو.دهغه اس ډير تيز وو په لارکښې وران شو دې ولی الله ډير کوشش اوکړو خوځناور هډو قدم اوچت نه کړو. آخر عاجز شو نو ورته نې اووئيل چه څه خبره ده چه تاړې شروع کړه هم د داسې موقع د پاره خو ماستاخدمت کولو اوته مې په مينه ساتلې وې. اس له الله تعالی ژبه ورکړه او جواب نې ورکړو چه تابه زما وابنه اوګيادانه وغيره د اس ساتونکی له ورکوله هغه به دې نه پټوله اوماله به نې د خوراك د پاره ډيره کمه دانه راکوله او په مابه نې ظلم کولو. مالك وئيل چه ته اوس روان شه اوزه الله تعالی په مينځ کښې حاضر ناظر ګڼړم اووعده کوم د نن نه پس به زه تاله په خپله غيږ کښې خوراك درکوم. ځناور چه داواوريده نو په تيزئې سره نې ټوپ کړو اوډير زر نې د امن ځاځ ته اورسولو. د وعدې مطابق به اوس دې بزرګ په خپل اس باندې په خپله غيږ کښې

---

[1]) ۲۷/النمل:٦٢.

خوراك كولو خلقو د ده نه د دې د وجه تپوس اوكړو نوهغه داواقعه بيان كړه اودا خبره عام مشهوره شوه اوخلق دې بزرګ له د لرې لرې نه د دې واقعه اوريدلود پاره راتلل.د روم بادشاه چه دا خبرواوريدو نو هغه دې په څه طريقه باندې خپل ښكار ته د روستلو دپركوشش اوكړو خو بې فائدې. آخر هغه څوك راوليګل چه چرته په څه بهانه باندې هغه بادشاه له راورسوی.داسړې اول مسلمان وو بيامرتدشو او دې دبادشاه نه راغلو اودلته ده سره ملاوشو دخپل اسلام څرګندونه ئې اوكړه اوتوبه ئې اوكړه اوډير نيكنې سره دلته اوسيدلو.تردې چه د دې ولی الله په ده باندې پوره يقين پيداشو اوهغه ئې نيك او صالح اوګڼرلواوهغه سره ئې دوستی جوړشوه او خان سره به ئې ګرځولو. هغه خپل پوره يقين كولوسره او د خپلې ظاهری ديندارئې په وجه ئې هغه په خپله دهوكه كښې راګيركړو اوبادشاه ته ئې خبروركړو چه فلانكی وخت د درياب غاړې له يوښه مضبوط تكره سړې راوليګه زه به دې هلته راولم اود دغه سړې په امدادبه داراګيركړم. ددې ځاځ نه ئې هغه په دهوكه روان كړواوهلته ئې بوتلو.ناڅاپی داسړې ښكاره شو اوبه دې بزرګ ئې حمله اوكړه د بل طرف نه هغه مرتد حمله اوكړه. دې نيك سړې هغه وخت آسمان ته سترګې اوچتې كړې اودعائی اوكړه اې الله دې سړی خو ماته ستا په نوم سره دهوكه راكړه زه تاته سوال كوم چه ته څنګه غواړې ماد دې دواړونه بچ كړې. هلته د ځنګل نه دوه ليوه ګان په منډه راتلونكی ښكاره شو اودا دواړه سړې ئې راګيركړه ټكرې ټكرې ئې كړل اولاړل اود الله تعالی دابنده ښه په امن او امان سره واپس صحيح سالم تشريف راوړ. رحمه الله.

قوله تعالى:- وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ ؕ

دخپل رحمت دا شان بيانولوسره بيا الله عزوجل د طرف نه دا ارشاد بيانولې شی چه هم هغه ذات تاسو د زمكې مالكان جوړوی يويو شاته راروان دې اوبرابرداسلسله روانه ده. لكه چه ارشاد دې ﴿اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاْتِ بِاٰخَرِيْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا۝﴾[1] كه هغه اوغواړی نو تاسوټول به د دې ځاځ نه فناكړی اونور څوك به ستاسو په ځاځ كړی لكه څنګه چه ئې تاسو د نورو خليفه ګان كړی ئې. بل آيت كښې دی﴿وَهُوَ الَّذِيْ جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْاَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ ؕ اِنَّ رَبَّكَ سَرِيْعُ الْعِقَابِ ۖ وَاِنَّهٗ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ۝﴾[2]هم هغه الله تعالی تاسو د زمكې جانشين جوړكړی ئې اويوله ئې په بل باندې درجې زياتې كړی دی.حضرت آدم ﷺ ته چه ئې خليفه وئيلې وو هغه هم په دې اعتبارسره چه د هغه اولاد به د يوبل جانشين وی. لكه چه آيت كښې ﴿وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً ؕ قَالُوْٓا اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ ۚ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ؕ قَالَ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ۝﴾[3] په تفسير كښې په تفصيل سره بيان شوې دې.د دې آيت د دې جملې نه هم دا مراد دې د يونه پس بل اود يوې زمانې نه پس بله زمانه د يوقوم نه پس بل قوم اودا د الله تعالی قدرت دې او په دې كښې د مخلوق مصلحت دې ګنی كه هغه غوښتل نو ټول به ئې هم په يووخت په يو ځاځ كښې پيداكړې وو اوبه يوځل به ئې فناكړی وو خوهغه دا خبره اوساتله چه يومړشی نو بل پيداشی.

حضرت آدم ﷺ ئې پيداكړو د هغه نسل ئې خوركړواو په دنياكښې يوه داسې طريقه كيخوده چه د هغوی رزق او دهغوی ژوندتنګ نه شی ګنی ټولو انسانو به په زمكه باندې په يوځل په تنګنی سره وخت تيرولو اود يونه به بل ته نقصان رسيدلو. داموجوده طريقه د الله تعالی په حكمت باندې دليل دې دټولو د پيداكولو مړه كولو تللو راتللود هغه په نيز باندې وخت مقرردې. يويود هغه په علم كښې دې د

---

[1] ) ٤/النساء:١٣٣.

[2] ) ٦/الانعام:١٦٥. الخ.

[3] ) ٢/البقره:٣٠.

هغه د نظرنه څوک هم غیب نه دی. هغه یوه ورځ داسې هم راورونکې دې چه د ټول به په میدان کښې راجمع کړې اودهغوی فیصلې به اوکړی. د نیکئی اوبدئی بدله به ورکوی. دا خپل قدرتونه بیانولوسره فرمائی چه شته څوک داسې چه داکارونه اوکړې شی؟ اوچه کله نه شی کولې نود عبادت لاتق هم نه شی کیدې داسې صفادلیلونه ډیر کم سوچ کولې شی اود دې نه هم ډیر کم خلق نصیحت حاصلوی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَمَّنْ يَهْدِيكُمْ | فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ | وَالْبَحْرِ | وَمَنْ | يُرْسِلُ | |
| آیا هغه څوک دې چې لار ښائي تاسو ته | په تیرو داوچې (بیابان) کښې | او ددریاب کښې | او څوک | رالیږي | |
| که هغه چې تاسو ته د اوچې او د سمندرپه تورو تیارو کښې لارې ښائی \| اوهغه ذات چې | | | | | |
| الرِّيَاحَ | بُشْرًا | بَيْنَ يَدَيْ | رَحْمَتِهِ ط | أَإِلَٰهٌ | مَعَ اللَّهِ ط |
| هواګانې | په طور دزیری | مخکښې | درحمت خپل نه | آیا شته بل معبود | دالله سره |
| دخپل (باران) رحمت نه وړاندې زیرې ورکونکې هواګانې رالیږې \| آیا دالله سره بل معبود شته (نشته) | | | | | |
| تَعَالَى | اللَّهُ | عَمَّا | يُشْرِكُونَ ۝ ط | أَمَّنْ | |
| لوئ (اوچت) دې | الله | دهغه څیزونونه | چې دوئ ئې شریکوی (دالله سره) | آیا هغه څوک دې | |
| الله ﷻ د دوئ جوړوکړو شریکانونه ډیر اوچت دې \| .....................که هغه ذات | | | | | |
| يَبْدَؤُا | الْخَلْقَ | ثُمَّ | يُعِيدُهُ | وَمَنْ | يَرْزُقُكُمْ |
| چې ابتداء کوی | دپیداوښت | بیا | اعاده کوی دهغې | او څوک دې | چې رزق درکوی تاسو له |
| چې مخلوقات ئې په اول ځل پیدا کړل اوبیا به ئې سردوباره پیدا کوی\|اوهغه ذات چې تاسو ته | | | | | |
| مِّنَ السَّمَاءِ | وَالْأَرْضِ ط | أَإِلَٰهٌ | مَعَ اللَّهِ ط | قُلْ | هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ |
| داسمان نه | او دزمکې نه | آیا شته بل معبود | دالله سره | ورته اووایه | راوړئ \| دلیل خپل |
| د اسمان او زمکې نه روزی درکوی \| آیا دالله سره بل معبود شته (نشته) \| ته ورته اووایه چې خپل دلیل راوړئ | | | | | |
| إِن كُنتُمْ | صَادِقِينَ ۝ | قُلْ | لَّا يَعْلَمُ | مَن | فِي السَّمَاوَاتِ |
| که یئ تاسو | رښتینی | اووایه | نه پوهیږی | هغه څوک | چې په آسمانونو کښې دی |
| که چرې تاسو رښتونی یئ \| .....ورته اووایه چې په اسمانونو او | | | | | |
| وَالْأَرْضِ | الْغَيْبَ | إِلَّا اللَّهُ ط | وَمَا يَشْعُرُونَ | أَيَّانَ | |
| او په زمکه کښې دی | په غیبو بلندې | ماسوا دالله نه | او معلومه نه ده دوئ ته | چې کله به | |
| زمکه کښې دالله ﷻ نه بغیر بل څوک په غیبو پوهیږی ؟! او دوئ خو دومره هم خبر نه دی | | | | | |
| يُبْعَثُونَ ۝ | بَلِ ادَّارَكَ | عِلْمُهُمْ | فِي الْآخِرَةِ قف | بَلْ | هُمْ |
| راپاسولې کیږی دوئ | بلکه ورک شوی دی | علم ددوئ | په باره داخرت کښې | بلکه | دوئ |
| چې کله به (دوباره) راژوندې کولې شی\|بلکه داخرت په باره کښې د دوئ علم ورک دی \| بلکه داخلق د آخرت باره کښې | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِیْ شَكٍّ | مِّنْهَا | بَلْ هُمْ | مِّنْهَا | عَمُوْنَ۝ | |
| په شك كښې دی | د آخرت په حقله | بلكه دوئ | دهغې (قيامت) نه | ړانده دی | |
| په شک کښې پراته دی | بلکه دوئ دهغې د راتلو نه خانونه ړانده کړی دی | | | | |

قوله تعالى:- اَمَّنْ یَّهْدِیْكُمْ فِیْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ

**په تیاروکښې هدایت اودباران دپاره یخې هواګانې څوک چلوی:**-په زمکه اوآسمان کښې الله ﷻ داسې نښې کیخودې دی چه په اوچه یا لمده کښې څوك لارهیره کړی نوهغه دې ته په کتوسره نیغه لار اختیار کړی. لکه ارشاددې په ستوروسره خلق لار کوری په سمندرونوکښې او په اوچه کښې د دې کتو سره نیغ لاراخلی داوبونه ډکې اوریځې راوریږی دې نه وراندې هغه یخې اوښکلې ښکلې هواګانې هغه چلوی په کوم سره چه خلق پوهیږی چه اوس به د رب رحمت راوریږی. د رب نه بغیرد دې کارونو کونکې هیڅ څوك نشته اونه څوك په دې باندې قادردې. د ټولوشریکانونه هغه جدا دې پاك دې او اوچت دې.

قوله تعالى:- اَمَّنْ یَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ یُعِیْدُهٗ

**په دوباره پیداکولوباندې یو ښائسته مثال:**- فرمائی چه رب هغه ذات دې چه په خپل قدرت کامله سره بغیرد نمونې نه مخلوقات پیداکوی. بیابه دوی فناه کړی اودوباره به ئې راپیدکوی. کله چه تاسو هغه په رومبی خل پیداکولو باندې قادرمنئی نودوباره پیداکول چه د دې نه ډیر آسان دی په دې باندې ولې قادر نه منئ؟دآسمان نه باران راورول دزمکې نه غلې راټوکول ستاسودرزق سامان د آسمان او زمکې نه کول هم دهغه کار دې.لکه چه په سورت طارق کښې فرمائی داوبود آسمان اودراټو کیدونکې زمکې قسم. بل آیت کښې دی﴿ یَعْلَمُ مَا یَلِجُ فِی الْاَرْضِ وَمَا یَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا یَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَمَا یَعْرُجُ فِیْهَا ؕ وَهُوَ الرَّحِیْمُ الْغَفُوْرُ۝ ﴾ ([1]) یعنی الله تعالی ته معلوم دی هریوخیز چه په زمکه کښې ځائ کړې شوې دې اوکوم چه د دې نه بهر راځی اوکوم چه د آسمان نه راکوزشی اوکوم چه دې ته اوخیژی. د آسمان نه باران راورونکې دې او دا په زمکه کښې د اخوانه دیخوا رسونکې او په دې سره قسم قسم میوې ګلونه ګیابوټی راټوکونکې هم هغه دی. کوم چه ستاسو اوستاسو د څاروو رزق دې. یقیناً دا ټول څیزونه د یود عقل خاوندد پاره د الله تعالی لوئ لوئ نښې دی. خپل داقدرتونه او ډیر بې انتها احسانونوبیانولوسره ارشاد فرمائی آیا الله تعالی سره په دې کارونوکولوکښې نور هم څوك شته چه د هغه عبادت اوکړی شی؟ که تاسو د الله تعالی نه بغیرنور معبودان منل په څه دعوی سره ثابتولې شئ نوهغه دلیل پیش کړئ صرف بې دلیل خبرې دی.د دې دپاره بل آیت کښې فرمائی دالله تعالی نه بغیرد چه د نورو عبادت کوی د کوم چه هیڅ دلیل دوی سره نشته هغه یقینی کافران دی او د خلاصی نه محروم دی.

قوله تعالى:- قُلْ لَّا یَعْلَمُ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَیْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ

**علم غیب صرف د الله ﷻ صفت دې:**- الله ﷻ خپل نبی کریم ﷺ ته حکم ورکوی چه هغه دې ټول جهانٌ په دې باندې پوهه کړی چه ټول مخلوق که د آسمان وی که د زمکې د غیب پیژندلود علم نه خالی دی بغیرد الله ﷻ نه چه وحده لاشریك له دې بل هیڅ څوك د غیبوپیژندونکې نشته. دلته استثناء منقطع ده. یعنی بغیرد الله ﷻ هیڅ څوك پیرې او فرښته په غیبونه پوهیږی. لکه چه ارشاد دې﴿ وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَیْبِ لَا یَعْلَمُهَاۤ اِلَّا هُوَ ؕ وَیَعْلَمُ مَا فِی الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ؕ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا یَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِیْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَّلَا یَابِسٍ اِلَّا فِیْ كِتٰبٍ مُّبِیْنٍ۝ ﴾([2])یعنی

---

[1]) ۳٤/سبا:۲.

[2]) ٦/الانعام:۵۹.

دغیبو کنجیانې هم هغه سره دی کوم چه دهغه نه بغیرڅوك هم نه پیژني. بل ارشاد دې ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ ۖ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا ۖ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾[1] هم الله تعالی سره د قیامت علم دې هم هغه باران راوروی اوهم هغه ته دمور په خیټه کښې دبچي خبردې هیڅ څوك نه پوهیږی چه صبابه څه کوی نه چاته داخبردې چه هغه به کوم ځائ مری؟ علیم اوخبیرصرف هم الله تعالی دی. د دې مضمون نور هم آیاتونه شته. مخلوق ته خو داهم پته نشته چه قیامت به کله راځی؟د آسمانونواوزمکووالا یوهم نه دې خبر چه د قیامت وخت کوم یو دې؟ لکه چه فرمان دې ﴿ثَقُلَتْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً ۗ يَسْأَلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾[2] په ټولوباندې داعلم ګران اوسخت دې هغه خو به ناڅاپي راځی. د حضرت عائشه صدیقه ﵂ فرمان دې که څوك وائی چه حضورﷺ د صبا خبره پیژني نوهغه په الله تعالی باندې یو عظیم بهتان اوتړلو څکه چه الله تعالی فرمائی د زمکې او آسمان والا کښې هیڅ څوك هم د غیبوپیژندونکې نشته.[3] قتاده ﵀ فرمائی چه الله تعالی په ستوروکښې درې فائدې ایښودې دې د آسمان ښائست د لار هیروشود پاره لارخودنه او د شیطانانو ویشتل. د بل څه خبرې دې سره عقیده لرل د خپل ځان نه خبره کول تکلیف اوچتول دی اوخپله حصه بیلل دی.

**د ستور متعلق دجاهلانوګنده عقیدې:**-جاهلانو ستوروسره علم نجوم تړلې اوددې متعلق ئې فضول خبرې جوړې کړې دی چه د دې ستوری په وخت کښې څوك نکاح اوکړی نوداسې به وی اود فلانکی ستوری په وخت سفرکولوسره داسې کیږی د فلانکی ستوری سره چه پیدائش اوشی نوداسې کیږی وغیره وغیره دا ټولې دځان نه خبرې دی. د دوی د دې بکواس خلاف هم اکثر کیږی. د هر ستوری په وخت کښې څوك تور سپین لنډاوږد ښائسته اوبدرنګه پیداکیږی نه یوڅناور په غیبوپوهیږی اونه د یوې مرغئی نه غیب حاصلیدې شی اونه ستوری د غیبولارخودنه کوی. واورئ د الله تعالی فیصله شوې ده چه دآسمان اوزمکې ټول مخلوق د غیبونه ناخبره دې. هغوی ته خود خپل راژوندی کیدو وخت هم نه دې معلوم.(ابن ابی حاتم)سبحان الله د قتاده ﵀ داقول څومره صحیح څومره فائده منداود معلوماتو نه ډك دې.

**د اخرت باره کښې ټول مخلوقات په نه علم کیدو برابر دی:**- بیا ارشاد فرمائی چه خبره داده چه د هغه د علم آخرت په وخت کښې د پیژندلونه تنګ راغلې اوعاجز شوی دی. په یوقراءت کښې ﴿بل ادرك﴾ دې یعنی ټول په ټول د آخرت د صحیح علم نه پیژندلوکښې برابردی. لکه چه حضورﷺ د حضرت جبرائیل ﵇ د سوال په جواب کښې فرمائیلې ووزما اوستا دواړو علم د دې د جواب نه عاجز دی.[4] نودلته هم اوفرمائیلې شو د آخرت نه د هغوی علم غیب دې.کافران د خپل رب نه جاهلان دی څکه دوی د آخرت هم منکر دی اوهغه ځائ ته د دوی علم رسی نه.یوقول داهم دې چه په آخرت کښې به دوی ته علم حاصلیږی خوبې فائدې دې لکه چه بل ځائ دی په کومه ورځ چه دوی مونږ له راورسی نودیر اوریدونکی اوکتونکی به شی ولې نن به ظالمان په ښکاره ګمراهئ کښې وی. بیا ارشاد دې چه بلکه داخوبه په شك کښې دی دې نه مراد کافران دی. لکه چه ارشاد باری تعالی دې ﴿وَعُرِضُوا عَلَىٰ رَبِّكَ صَفًّا لَّقَدْ

---

[1] ۳۱/لقمان:۳٤.

[2] ۷/الاعراف:۱۸۷.

[3] صحیح مسلم کتاب الایمان باب معنی قول الله عزوجل ﴿ولقدرآه نزلة اخری﴾:۱۷۷.

[4] صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان الایمان والاسلام والاحسان ووجوب الایمان...:۸.

جِئۡتُمُوۡنَا كَمَا خَلَقۡنٰكُمۡ اَوَّلَ مَرَّةٍۢ بَلۡ زَعَمۡتُمۡ اَلَّنۡ نَّجۡعَلَ لَكُمۡ مَّوۡعِدًا ۝)[1] یعنی داخلق به د خپل رب په وړاندې صفونه تړلې شوی پیش کیږی.الله تعالی به فرمائی چه مونږ تاسو په اول ځل څنګه پیداکړی وئی اوس تاسو مونږ راوړلئی خوتاسوهم داګڼړل چه قیامت خو هیڅ څیز نه دې. مراد دا دې چه په تاسو کښې کافرانو دا ګنړل. نو په پورته آیت کښې هم ضمیر د جنس طرف ته راګرځی خو مراد تری هم کافران دی. هم په دې وجه ئی په آخره کښې اوفرمائیل چه دوی خودې نه هم رانده دې نابینا کیږی اوسترګې بند کړی دی.

وَقَالَ الَّذِيۡنَ

| اووائی | هغه کسان

| او دا کافران

كَفَرُوۡٓا ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا وَّاٰبَآؤُنَآ اَئِنَّا

چی دحق نه منکر دی | ایا هر کله چی | شو مونږه | خاورې | او پلاران زمونږه | ایا نو مونږ به |

وائی چی ایا هرکله مونږ اوزمونږ مشران خاورې شو | نو ایا مونږ به دوباره (د قبرونو نه) راژوندی

لَمُخۡرَجُوۡنَ ۝٦٧ لَقَدۡ وُعِدۡنَا هٰذَا نَحۡنُ

خامخا راایستلې کیږو | خامخا وعدې شوی دی زمونږ سره | ددې قیامت | زمونږ سره هم |

کولې شو؟|..............مونږ او زمونږ پلار نیکونو سره هم دا وعدې وړاندې شوې وې

وَاٰبَآؤُنَا مِنۡ قَبۡلُ ۙ اِنۡ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيۡرُ الۡاَوَّلِيۡنَ ۝٦٨

او دپلارانو زمونږ سره هم | مخکښې ددې نه | نه دی دا | مګر | قیصې دی | دړومبنو خلقو

..........................دا هسې دپخوانو خلقو(جوړې کړې) قیصې دی

قُلۡ سِيۡرُوۡا فِى الۡاَرۡضِ فَانۡظُرُوۡا كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ

ورته اووایه | چی اوګرځئ | په زمکه کښی | پس اوګورئ | چی څرنګې وؤ | انجام

ورته اووایه چې زمکه کښې اوګرځئ | نو اوګورئ چې د مجرمانو انجام څۀ شو ؟

الۡمُجۡرِمِيۡنَ ۝٦٩ وَلَا تَحۡزَنۡ عَلَيۡهِمۡ وَلَا تَكُنۡ فِىۡ ضَيۡقٍ مِّمَّا

دمجرمانو | اوته غم مۀ کوه | په حال ددوئ | اومۀ کیږه ته | په تنګئ کښې د | دهغې

..................| اوته دوئ په حال غم مه کوه |او د دوئ په سازشونو خپل زړه مه

يَمۡكُرُوۡنَ ۝٧٠ وَيَقُوۡلُوۡنَ مَتٰى هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ كُنۡتُمۡ

فریبونونه چې دوئ ئې کوی | اووائې دوئ | کله به وی | دا وعده | که یئ تاسو |

تنګوه | اودوئ وائی چې دا (د عذاب) وعده به کله پوره کیږی | که چرې تاسو رېښتونی

صٰدِقِيۡنَ ۝٧١ قُلۡ عَسٰٓى اَنۡ يَّكُوۡنَ رَدِفَ لَكُمۡ بَعۡضُ الَّذِىۡ

رښتینی | اووایه | کیدې شي | چی وی | نزدې | تاسو ته | یوه حصه دهغه عذاب

یئ (محبوبه) ته ورته اووایه چې کیدیشی چې تاسو کوم عذاب دومره په تلوار غواړئ د هغې بعضې

---

[1] ١٨/الكهف:٤٨. اع

تَسْتَعْجِلُوْنَ۝ وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ

چي غواړئ ئې تاسو په جلتئ | بيشكه | رب ستا | خاوند دفضل دې | په خلقو باندې | وليكن

حصه په تاسو پورې لګيدلې وى | او بيشكه ستا رب په خلقو ډير مهربان دې | خو زيات

اَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُوْنَ۝ وَاِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ

اكثر ددوئ | شكر نه اوباسي | او بيشكه | رب ستا | خامخا پوهيږى | په هغه څه | چي پټوى ئې

خلق شكر نه اوباسى | او بيشكه ستا رب ته هغه ټول څه معلوم دى | كوم چي د دوئ زړونه

صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ۝ وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِي السَّمَآءِ

سينې ددوئ | او هغه | چي ښكاره كوئ ئې دوئ | او نشته يو پټ څيز | په آسمان كښې |

پټوى او كوم چي ښكاره كوى | ............... او په آسمانونو او په

وَالْاَرْضِ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ۝

او په زمكه كښې | مګر دى | په كتاب | ښكاره كښې |

زمكه كښې دساې هيڅ پټ څيز نشته | مګر په روښانه كتاب (لوح محفوظ) كښې ليک دى |

قوله تعالى:- وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا تُرٰبًا

**د قيامت منكران په سخت عذاب سره مخ كړې شو:-** دلته بيان كولې شى چه د قيامت د منكرانو په پوهه كښې تراوسه پورې دا رانغله چه دمړه كيدواوسخاكيدونه پس خاوره اوايره كيدونه پس مونږ به بيا څنګه راپيداكولې شو؟هغوى په دې باندې سخت حيران دى.وائي چه د مودو نه خو مونږ هم دا اورو راروان يو ولې مونږ هيڅ څوك هم د مرګ نه پس راژوندى كيدوسره اونه ليده صرف د اوريدلو خبرې دى.هغوى د خپل خان نه د وړاندې نه اوهغوى د مخكينونه اوريدلى دى او مونږ ته راورسيدې خو دا ټول د عقل نه لرې دى.

قوله تعالى:- قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا

الله ﷻ خپل نبى ﷺ ته جواب ښائي دوى ته لږ شان اووايه چه په زمكه كښې اوګرځئ چه د رسولانو تكذيب كونكى اود قيامت نه منونكى څنګه په دردناك عذاب اود ارمان نه په ډك انجام سره هلاك او تباه شو اوانبياء عليهم السلام اودايمان والا الله ﷻ بچ كړل.دا د انبياء كرامو عليهم السلام د صداقت دليل دې بيانې خپل نبى ﷺ ته تسلى وركړه چه دوى تا اوزماكلام دروغ ګڼړى څوته په دوى باندې افسوس اوخفګان مه كوه. هغوى پسې خپل زړه مه خوره دا دوى چه تاسره كومې دهوكې اوچالبازئ كوى مونږ ته ښه معلوم دى ته بې فكره اوسه تاته اوستا دين ته ترقى وركونكى هم مونږ په دنيااوجهان كښې به مونږ تا اوچت كړو.

قوله تعالى:- قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ

**تندى ولې كوئې قيامت نيزدې دې:-** مشركان خود قيامت دراتلوهډوقائل نه ووبه بهادرئى سره به نى دازر غوښتلو اووئيل به ئې كه رښتوې ئې نواوښايه چه كله به وى؟دالله ﷻ دطرف نه په واسطه د رسول الله ﷺ جواب وركولې شى چه ممكن دى هغه ډير نيزدې راغلې وى لكه چه بل آيت كښې دى ﴿قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَرِيْبًا﴾[1] بل ځاى دى دوى عذابونه زر غواړى اودوى خو په دوزخ كښې راګير كړې شوى دى د ﴿لكم﴾ لام د ﴿ردف﴾ د ﴿عجل﴾ معنى دمتضمن كيدو په وجه ده. څنګه چه مجاهد ﷫ نه روايت دې. بيا

---

[1] ۱۷/الاسراء: ۵۱.

فرماني چه د الله ﷻ په انسانانو باندې ډېر فضل اوکرم دې د هغه بېشمېره نعمتونه دوی سره دی. بيا هم په دوی کښې ډېرناشکره دی. څنګه چه ټول ظاهري امور په هغه باندې ښکاره دی دغه شان ټول باطني امورهم هغه ته ښکاره دی. لکه چه فرماني ﴿ سَوَآءٌ مِّنكُم مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَن جَهَرَ بِهِۦ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِالَّيْلِ وَسَارِبٌۢ بِالنَّهَارِ ﴾[۱] بل آيت کښې دی ﴿ يَعْلَمُ السِّرَّ وَأَخْفَى ﴾[۲] بل آيت کښې دی ﴿ أَلَآ إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا مِنْهُ ۚ أَلَا حِينَ يَسْتَغْشُونَ ثِيَابَهُمْ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ۚ إِنَّهُۥ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴾[۳] مطلب هم دا دې چه د هر پټ او ښکاره هغه عالم دې بيابيان فرماني چه د هرغيب اوحاضر هغه ته علم دې هغه علام الغيوب دې د آسمان او زمکې ټولوڅيزونو که د هغې تاسوته علم وی که نه وی الله تعالی سره په کولاوکتاب کښې ليکلې شوی دی. لکه چه ارشاد دې آياتاته نه ده معلومه چه د آسمان اوزمکې د هريوڅيز عالم رب تعالی دې. هر څه په کتاب کښې موجود دی اوالله تعالی ته دا هرڅه آسان دی.

إِنَّ | هَٰذَا | الْقُرْءَانَ | يَقُصُّ
بېشکه | دا قران | بيانوی
بېشکه دا قران پاک

عَلَىٰ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ | أَكْثَرَ الَّذِي | هُمْ | فِيهِ | يَخْتَلِفُونَ
په بني اسرائيلو باندې | اکثر هغه خبری | چې هغوئ | په هغې کښې | اختلاف کوی
بني اسرائيلو ته زياتې هغه خبرې څرګندوی | چې دوئ په کښې تراوسه اختلاف کوی

وَإِنَّهُۥ | لَهُدًى | وَرَحْمَةٌ | لِّلْمُؤْمِنِينَ | إِنَّ رَبَّكَ
او بېشکه دا قرآن | خامخا هدايت دې | اورحمت دې | دپاره دمومنانو | بېشکه رب ستا
اودا کتاب د ايماندارو دپاره د هدايت ذريعه اورحمت دې | ..............بېشکه ستا رب

يَقْضِي | بَيْنَهُم | بِحُكْمِهِۦ | وَهُوَ | الْعَزِيزُ | الْعَلِيمُ
فيصله به کوی | په منځ ددوئ کښې | په حکم خپل سره | اوهغه | غالب | او پوهه دې
به د دوئ په مېنځ کښې پخپل حکم فيصله اوکړی | اوهغه غالب ذات دې | او پوهه دې

فَتَوَكَّلْ | عَلَى اللَّهِ | إِنَّكَ | عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ | إِنَّكَ | لَا تُسْمِعُ
پس بروسه کوه | په الله باندې | بېشکه ته | په حق ښکاره باندې نې | بېشکه ته | نشې اوروليې
نوته په الله ﷻ باندې بهروسه کوه | بېشکه ته په واضحه حق باندې يې | بېشکه ته مړو ته خبرې

الْمَوْتَىٰ | وَلَا تُسْمِعُ | الصُّمَّ | الدُّعَآءَ | إِذَا | وَلَّوْا مُدْبِرِينَ
مړو ته | او نشې اوروليې | کڼرو ته | بلنه (آواز) | کله چې | واپس اوګرزی دوئ شاکونکی
نه شې اوروليې | اونه کوڼر ته اواز اوروليې شې | څه وخت چې هغوئ شاکړی اوروان شی

---

[۱]) ۱۳/الرعد:۱۰.
[۲]) ۲۰/طه:۷.
[۳]) ۱۱/هود:۵.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اَنْتَ | بِهٰدِي | الْعُمْيِ | عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ط | | اِنْ تُسْمِعُ |
| اونهٔ یې ته | لاربنوودونکي | ړندو ته | چې بچ ئې کړې دګمراهۍ دهغوئ نه | | نهٔ شې اورولې تهٔ |
| او ته ړندو ته چې په ګمراهۍ کښې پراته دي لاره نشې خودلې \| ته خو صرف هغو خلقو | | | | | |
| اِلَّا | مَنْ | يُّؤْمِنُ | بِاٰيٰتِنَا | فَهُمْ | مُّسْلِمُوْنَ۝ |
| مګر | هغه چاته | چې ایمان راوړي | په آیتونو زمونږ | پس هغوئ | مسلمانان (حکم منونکي) دي |
| ته اورول کولې شې \| چې زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړي \| او هغوی تابعدار وي | | | | | |

قوله تعالى:- اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَقُصُّ عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

**دحق اوباطل ف يصله كونكې قرآن پاك دې:**-دقرآن پاك هدايت بيانولې شي چه په دې كښې كوم ځاۍ رحمت دې هلته فرقان هم دې اوهلته دبنى اسرائيلويعنى دتورات اودانجيل دحاملانوداختلاف فيصله هم ده. لكه چه دعيسى ﷺ باره كښې چه يهوديانودشليدلي ځلي خبره اوخراب تهمت لګولي وو او عيسايانوهغوى د دوى د حد نه زيات وړاندې كړې وو. قرآن پاك فيصله اوكړه او د افراط اوتفريط يعنې كمى زياتى پريخودو سره ئې حق خبره اوخودله چه هغه د الله تعالى بنده اود هغه رسول دې هغه د الله تعالى په حكم سره پيداشوي دې د هغه مور ډيره پرهيزګاره ده صحيح او بالكل بې شكه او صفاخبره هم دا ده. اودا قرآن پاك د مؤمنانود زړونوهدايت دې اود هغوى د پاره سراسر رحمت دې. د قيامت په ورځ به الله تعالى د هغوى فيصلې كوى چه د بدلې په اخستوكې غالب دې اود بنده د اقوالو اواعمالو نه خبردې.

قوله تعالى:- فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ط

تاله هم په هغه باندې كامل يقين ساتل پكاردى د خپل رب په تبليغ كښې كوتاهى نه دى كول پكار. ته سراسر په حقه ئې مخالفين ازلى بدبخته دى په هغوى باندې ستا د رب خبره په صدق سره راغلې ده چه دوى ته به ايمان نه نصيب كيږى سره د دې چه كه ته هغوى ته ټولې معجزې هم اوښائې. ته مړو ته فائده وركونكې خبرې نه شې كولې ته صرف هغوى ته اورولې شې يعنى قبلوى به ئې صرف هغوى چه غوږ كيږدى واورى او زړه اولګوى ځان پوهه كړى دې سره ايمان اواسلام په هغوى كښې وى. د الله تعالى اورسول الله ﷺ منونكى وى د الله تعالى د دين قائل او عامل وى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذَا | وَقَعَ | الْقَوْلُ | عَلَيْهِمْ | اَخْرَجْنَا | لَهُمْ |
| او كله چې | راشي | خبر دپوره كيدو دوخت | په هغوئ باندې | نو راوبه باسو مونږ | دپاره دهغوئ |
| اوهركله چې (دالله د عذاب) وعده د دوئ په حق كښې پوره شي \| نو مونږ به د دوى دپاره د زمكې | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دَآبَّةً | مِّنَ الْاَرْضِ | تُكَلِّمُهُمْ لا | اَنَّ النَّاسَ | كَانُوْا | بِاٰيٰتِنَا | |
| يو خناور | دزمكې نه | چې خبرى به كوى دهغوئ سره | چې بيشكه خلق | وو | په آيتونو زمونږ | |
| نه يو ځناور راوباسو \| چې خبرې به ورسره كوى \| چې دې خلقو زمونږ په آيتونو يقين | | | | | | |
| لَا يُوْقِنُوْنَ۝ ع | | | | | | |
| چې يقين به ئې نهٔ كولو | | | | | | |
| نه لرلو | | | | | | |

قوله تعالی:- وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً
د قیامت نخښې اود دَابَّةً مِّنَ الْأَرْضِ تذکره او دې کښې اقوال:- دکوم ځناور چه دلته ذکر دې دا دخلقو بالکل ورانیدو دالله تعالی د دین پریخودو په وخت کښې آخری زمانه کښې ښکاره کیږی اوخلقو به حق دین بدل کړې وی.بعضې وائی چه دابه مکه مکرمه کښې راوخی اوبعضې وائی یوبل ځائ نه راوخی چه د هغې تفصیل اوس راځی ان شاء الله. هغه به وینا کوی خبرې به کوی او وائی به چه خلقو به د الله تعالی د آیاتونو یقین نه کولو. ابن جریر رحمه الله هم دامختار ګنړی خو په دې قول کښې نظردې. والله اعلم. ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه هغه به دا زخمی کوی یوبل روایت کښې دی چه چه هغه به دا اودا دواړه کوی. داقول ډیر ښه دې او په دواړوکښې څه منافات نشته. والله اعلم. هغه احادیث او آثار چه د دابة الارض باره کښې نقل دی په هغې کښې مونږ څه دلته بیانوو. والله المستعان.
د(دَابَّةُ الْأَرْضِ) متعلق احادیث او اقوال:-[اول قول] صحابه کرام رضي الله عنهم یوخل ناست وو د قیامت ذکر نی کولو.رسول الله ﷺ د عرفات نه تشریف راوړو مونږ نی په ذکر کښې مشغول اولیدلونوونی فرمائیل چه قیامت به نه قائمیږی ترکومې چه تاسو لس نښې نه وی لیدلې. د نمر د مغرب نه راوتل، لوګی، دابة الارض،یاجوج ماجوج راوتل، د عیسی علیه السلام بن مریم راوتل، اود دجال راوتل او په مغرب مشرق او جزیره عرب کښې درې ځل تندر کیدل اود یوأور دعدن نه راوتل چه د خلقو حشر به کوی هم دې سره به شپه تیریږی اوهم دې سره به د غرمې اوده کیدل کیږی. ([1])
دویم قول:-ابوداؤدطیالسی کښې دی دابة الارض به درې ځل راوخی د لرې ځنګل کښې به ښاراود هغې ذکر به ښکار یعنی مکې ته نه رسی. بیا به د یوې اوږدې زمانې نه پس ښکاره کیږی اود خلقو په ژبو به دده قصه راشی تردې چه مکې ته به هم د ده خبرراورسی.بیاچه کله خلق د الله ﷻ د ټولونه زیات د حرمت اوعظمت مسجدحرام کښې وی هم هغه وخت به ناڅاپی اوډیر زر دابة الارض هغوی ته هلته ښکاره شی د رکن او مقام په مینځ کښې کښې به د خپل سرنه خاوری څنډی خلق چه دې وینی نو اخوا دیخوابه شی دې به د مؤمنانوډلې له لاړ شی اود هغوی مخونه به د پرقیدونکی ستوری په شان روښانه کړی نه د هغه نه په تیختنه څوك بچ کیدې شی نه په پټه پاندې تردې چه یوسړی به په مانځه اودریږی او دهغه نه به پناه غواړی. دې به دهغه شاته راشی وائی به اوس مانځه ته اودریدې؟بیابه د هغه په تندی باندې کرښه اوکړی اولاړبه شی.د ده د نښې لګولو سره به کافراومؤمن په صفاتوګه ښکاری.تردې چه مؤمن به کافرته وائی اې کافره زما حق اداکړه اوکافر به مؤمن ته وائی اې مؤمنه زماحق اداکړه.دا روایت د حذیفه بن اسید رضي الله عنه نه موقوفا هم نقل دې.
دریم قول:-یوروایت کښې دی چه دا به دعیسی علیه السلام په زمانه کښې وی په هغه وخت کښې هغه دبیت الله طواف کوی. خود دې اسناد صحیح نه دی.
څلورم قول :په صحیح مسلم کښې دی چه د ټولونه اول به کومه نښه ښکاره کیږی هغه د نمر د مغرب نه راوتل دی د دابة الارض د ضحی په وخت کښې راتلل دی. په دې دواړو کښې چه کوم یو اول وی دویم به د دې نه پس وی. ([1])
پنځم قول:-په صحیح مسلم کښې دی حضور ﷺ اوفرمائیل دشپږوڅیزونونه وړاندې وړاندې نیك اعمال اوکړئی. د نمرد مغرب نه راوتلونه،د لوګی راتلل، د دجال راتلل، د دابة الارض راتلل او په تاسو کښې دهریوخاص امر اوعام امر([1]) داحدیث په نورو اسنادو سره په نورو کتابونوکښې هم شته.([2])

---

[1]) صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی الایات التی تکون قبل الساعة:۲۹۰۱، ابوداؤد:۴۳۱۱، ترمذی ۲۱۸۳، ابن ماجه:۴۰۴۱،احمد:۶/۴،ابن حبان: ۶۸۴۳. (مسلم وغیره)
[2]) صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی خروج الدجال ومکثه فی الارض:۲۹۴۱، ابوداؤد:۴۳۱۰، ابن ماجه:۴۰۶۹.

شپږم قول:- ابوداؤد طیالسي کښې دی حضورﷺ فرماني دابة الارض سره به د حضرت موسی ﷺ همساوی اودحضرت سلیمان ﷺ ګوتمه وی دکافرانو په پوزه باندې په همساسره نښه لګوی اود مؤمنانومخ به په ګوتمه باندې منور کوی تردې چه په یو دسترخوان باندې ناست مؤمنان اوکافران به تول ښکاره شی. (۳)

اووم قول:-په یوبل حدیث کښې چه په مسنداحمدکښې نقل دې چه د کافرانو په پوزه به په ګوتمه سره مهرلګوی اود مؤمنانومخونه به په همسا سره روښانه کوی. (۴)

اتم قول:-ابن ماجه کښې د حضرت بریده ﷺ نه روایت دې زه رسول الله ﷺ سره د مکې خواکې یو ځنګل ته لاړم. مااوکتل چه یو اوچه زمکه ده د کومې ه چاپیره چه شګه ده ونی فرمائیل چه هم دې ځان نه به دابة الارض راوځی. حضرت بریده ﷺ وائی چه زه څوکاله پس حج له لاړم نومالرګې اولیدو چه زما د دې لرګی برابروو. (۵)

نهم قول:-حضرت ابن عباس ﷺ فرماني چه د دې به څلور پښې وی اود صفاد کندې نه به راوځی دومره په تیزئی سره به راوځی لکه چه یوډیر تیز اس خو بیابه هم په دریوورځوکښې د ده د بدن دریمه حصه نه وی راوتلې.

لسم قول:دعبدالله بن عمرو ﷺنه چه کله د دې باره کښې تپوس اوشونوهغوی اوفرمائیل چه په جیاد کښې یوغردې دهغې دلاندې نه به راوځی.که زه هلته ووم نو مابه تاسوته داغرخودلې وودې به نیغ د مشرق طرف ته خې اودومره په زوره به خې چه هریوطرف ته به د ده آواز رسی بیا به د شام طرف ته خې هلته به هم چغه وهی اودیمن طرف ته به خې دلته به هم چغه اووهی اودماښام په وخت کښې به دمکې نه لاړشي اوسحریه عسفان ته اورسی.خلقو تپوس اوکړو بیا به څه کیږی هغه وئیل بیا ماته پته نه لګی

یوولسم قول:- دعبدالله بن عمرﷺ قول دې چه د مزدلفه په شپه به راوځی.

دولسم قول:- دحضرت عزیر ﷺ دکلام یو حکایت دې چه د سدوم د لاندې نه به راوځی د ده خبرې به تول اوری. دحامله حمل به د وخت نه وړاندې پریوځی خوږې اوبه به ترخې شی دوستان به دښمنان شی حکمت به اوسوزی علم به اوچت کړې شی د لاندې زمکه به خبرې کوی د انسان به هغه خواهشات وی چه کله به هم نه پوره کیږی. د هغه څیزونو به کوشش وی چه کله به هم نه حاصلیږی. د هغې باره کښې به کارکوی چه کوم چه به خوری هم نه.

دیارلسم قول:-ابوهریره ﷺ فرماني چه د هغه په بدن باندې به تول رنګونه وی. د ده د دوو ښکرو په مینځ کښې د سور د پاره د یوفرسخ لاروی.

څوارلسم قول:-ابن عباس ﷺ فرماني چه دابه د پیرې نیزې او چرې په شان وی.

پنځلسم قول:- حضرت علی ﷺ فرماني د ده به وینښته وی نوکې به ئی وی ږیره به ئی وی لکې به ئی نه وی.دریوورځوکښې به په مشکله دریمه حصه راباهرشی سره د دې چه د تیز اس په شان به روان وی.

شپاړسم قول:-دابن زبیر ﷺ قول دې د ده سر به د غوائی دسر په شان وی سترګې به ئی دخنزیرد سترګو په شان وی غوږونه به ئی د هاتهی په شان وی د ښکرو ځائ به ئی د اوښ په شان وی د شترمرغ په شان ستې به ئی وی د زمری په شان به ئی سینه وی د شرمخ په شان رنګ به ئی وی د پیشو په شان ملا به

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی بقیة من احادیث الدجال:۲۹۴۷، احمد:۲/۳۲۴، ابن حبان:۶۷۹۰.
(۲) ابن ماجه کتاب الفتن باب الایات:۴۰۵۶وسنده حسن.
(۳) مسندالطیالسی:۲۵۶۴.
(۴) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة النمل:۳۱۸۷.
(۵) ۳۷/الصافات:۲۲.

نی وی دګه په شان لګنی به نی وی. د اوښ په شان به نی پښې وی د هرو دوواندامونو په مینځ کښې به نی ددولسو ګزو فاصله وی. دموسی ﷺ همسااوحضرت سلیمان ﷺ ګوتمه به ورسره وی. د هریومؤمن په تندی به د موسی ﷺ په همساباندې نښه کوی چه خوریږی به اود هغه مخ به روښانه کړی اود هر کافرپه مخ به په سلیمانی ګوتمه باندې نښه لګوی چه خور به شی او ټول مخ به نی تورشی. اوس به مؤمن اوکافر داسې ښکاره شی چه د اخستلو اوخرڅولو په وخت کښې د خوراك څښاك په وخت کښې خلق به یویل ته اې مؤمن اواې کافر ونیلو سره رابلی. دابة الارض به د یویو نوم اخلی هغوی ته به د جنت زیری اویا د دوزخ بدخبرورکوی. ددې آیت هم دا معنی اومطلب دې.

وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ

او یاده کړئ هغه ورځ | چی راجمعه به کړو مونږ | دهر امت نه

او په کومه ورځ چې مونږ د هر یو امت نه د هغې خلقو یوه ډله راغونډه کړو |

فَوْجًا مِّمَّنْ يُّكَذِّبُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ﴿٨٣﴾

یوه ډله | دهغه چانه | چی دروغ به نې ګڼړل | ایتونه زمونږ | بیا به هغوئ | په ترتیب کړې شی

چې زمونږ ایتونه ئې دروغ ګڼړل | .........................نوهغوئ به ډلو کښې تقسیم کړې شی

حَتّٰۤى اِذَا جَآءُوْ قَالَ اَكَذَّبْتُمْ

تر هغې پورې | کله چی | راشی هغوئ ټول یو ځاني ته | نو اوبه وائی الله | آیا دروغ ګڼړلی وو تاسو

تردې چې کله هغوئ (زمونږ دربار ته) راشی انو الله ﷻ به اوفرمائی چې آیا تاسو زما ایتونه دروغ ګڼړل

بِاٰيٰتِىْ وَلَمْ تُحِيْطُوْا بِهَا عِلْمًا اَمَّاذَا

ایتونه زمونږ | او حال دا چی تاسو احاطه نه وه کړی | په هغې باندې | په لحاظ دعلم سره | یا څه کار وو

حالانکه تاسو پرې ځان پوه کړې هم نه وو (بلکه بغیرد علم نه انکار کولو) | ایا (ددې نه علاوه)

كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٨٤﴾ وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ بِمَا

چې وئ تاسو | چی کوو به مو | او رابه شی | خبره دعذاب | په هغوئ باندې | په سبب دهغې

مو نورڅه (خراب) کارونه کول | اود هغوئ د ظلم په وجه به د هغوئ په حق کښې به (زمونږ د

ظَلَمُوْا فَهُمْ لَا يَنْطِقُوْنَ ﴿٨٥﴾ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّا

چې ظلم اوکړو هغوئ | پس هغوئ | به څه ونیلې نه شی | ایا نه ګوری دا خلق | چې بیشکه مونږه

د عذاب وعده پوره شی | اوهغوئ به خبرې هم نشی کولې | آیا دوئ اونه لیدل چې مونږ

جَعَلْنَا الَّيْلَ لِيَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا

جوړه کړه | شپه | دپاره ددې چې ارام اوکړی | په هغې کښې | او ورځ | روښانه

د دوی د ارام دپاره شپه جوړه کړه ده | او ورځ مو (د کار کسب دپاره) روښانه جوړه کړې ده

اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿٨٦﴾

بیشکه | په دې کښې | خامخا نښې دی | دپاره دهغه قوم | چې ایمان راوړی |

بیشکه په دې کښې هغو خلقو دپاره نخښې دی چې ایمان راوړی |

قوله تعالى:- وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا

داد حشرمیدان دې:- دالله ﷻ خبرې نه منونکو به دالله ﷻ په وړاندې حشر وی اوهلته به په هغوی باندې غصه اوړتنه کولې شی دې دپاره چه دهغوی دلت اوخواری اوکړې شی.دهرقوم نه به دهرې زمانې داسې خلق ډلې ډلې جدا جدا پیش کیږی لکه چه ارشاددې﴿اُحْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ﴾(١) ظالمان اودهغوی جوړې راجمع کړئی لکه چه بل ارشاد دې ﴿وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾(٢)کله چه د نفسونو جوړې ملاوولې شی دا ټول به یوبل ته دیکې ورکوی داول والا به دآخروالا ردکوی.ټول په ټول به د ځناورو په شان راشړلې شی اودالله تعالی مخکې به راوستلې شی.دهغوی په حاضریدوسره به هغه حقیقت انتقام اخستونکې په ډیره زیاته غصه کښې دهغوی نه ټپوس کوی دوی به دنیکونه خالی لاس وی.لکه چه ارشاد دې ﴿فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ۝ وَلَٰكِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ﴾(٣)یعنی نه هغوی صداقت کړې وو اونه ئی مونځونه کړی وو بلکه دروغ ئی ګنړلې وو اومخ ئی اړولې وو.نوپه هغوی باندې به حجت قایم شی او هیڅ عذر به اونه کړې شی. لکه چه ارشاد باری تعالی دې ﴿هَٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ ۝ وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُونَ﴾(٤) دا به هغه ورځ وی چه نه به خبرې کولې شی اونه به څه معقول عذر پیش کولې شی اونه به د غیرمعقول عذراجازت ورکولې شی.نود هغوی په ذمه باندې به خبره ثابته شی.حیران اوپریشان به وارخطا ولاړ وی اودخپل ظلم به ښه بدله بیامومی.په دنیاکښې ظالمان وو اوس چه دچا په وړاندې ولاړدی هغه عالم الغیب دې که څه خبره جوړوی نو جوړه به نه شی.

قوله تعالى:- أَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا اللَّيْلَ لِيَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ط

د الله ﷻ دقدرت دلائل:-بیادخپل کامل قدرت بیان فرمائی اوخپل اوچت شان ښائی اوخپل عظیم الشان سلطنت ښائی چه کولاو دلیل دې د هغه د تابعدارئی په فرضیت باندې اود هغه حکمونه په ځای راوړلو باندې اود هغه د منع کړې شوی کارونو نه د بندیدلو په ضرورت باندې اود هغه د انبیاؤکرامو د رښتیاو په اصلیت باندې چه هغه شپه د آرام جوړه کړه دې د پاره چه تاسو په هغې کښې آرام حاصل کړئی اود ټول ورځې ستړیوالې ختم کړئی اوورځ ئی رڼا کړه دې د پاره چه تاسو د خپل روزګار لټون اوکړئی د تجارت سفر اوروزګار په آسانئی سره اوکړې شئ. دا ټول څیزونه خود یومؤمن د پاره د کافی نه هم زیات دلیل دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ يُنفَخُ | فِي الصُّورِ | فَفَزِعَ | مَن | فِي السَّمَاوَاتِ |
| اوياد کړه هغه ورځ چې پوکې به اووهلې شي | په صور(شپیلئ)کښې | نواوبه ریریږی | هغه څوک | چه په آسمانونوکښې دی |
| او په کومه ورځ چې شپیلئ پوک وهلې شی | ......... | | نو څوک چې په آسمانونو او په | |
| وَمَن | فِي الْأَرْضِ | إِلَّا مَن | شَاءَ اللَّهُ ط | وَكُلٌّ |
| او هغه څوک | چې په زمکه کښې دی | بغير دهغه چانه | چې اوغواړی الله (بچ کول دهغه) | او ټول به |
| زمکه کښې موجود دی هغه ټول به اوویریږی | مګرهغه څوک چې الله ﷻ ئې اوغواړی | | | او ټول به ورته |

(١) ٣٧/الصافات:٢٢.

(٢) ٨١/التكوير:٧.

(٣) ٧٥/القيامة:٣١-٣٢.

(٤) ٧٧/المرسلات:٣٥-٣٦.

اَتَوْهُ دٰخِرِيْنَ۝ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً

راشي هغه ته | عاجزه | او (ئن) ويني ته | غرونه | ته گمان كوې په هغې | دمضبوطوالى

د فكر نه زوړند راروان وى | اوته چې غرونو ته گورې نو دا خيال به كوې اچې په ځائې ولاړ دى

وَّهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ؕ صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيْٓ

حالانكه دا غرونه | به تيريږى (الوزى) | پشان دالوتلو دوريځې | دا كار نامه ده دالله | دهغه الله

حال دا چې دا غرونه به لكه د وريځو غوندې الوزى | ...................... دا د الله ﷻ كاريگرى ده

اَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ؕ اِنَّهٗ خَبِيْرٌ بِمَا تَفْعَلُوْنَ۝

چې محكم ئې جوړ كړې دې | هر څيز | بيشكه هغه | خبر دې | په هغه كارونو | چې تاسو ئې كوئ

چې هرڅيز ئې ډير مضبوط جوړ كړې دې | هغه ستاسو په كارونو ښه خبر دې

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ خَيْرٌ مِّنْهَا ۚ وَهُمْ

هغه څوك | چې راشي | دنيكئ سره | نو مقرر ده هغه لره | بهتره بدله | دهغې نه | او دغسې خلق به

څوك چې (زمونږ دربار ته) نيكى راوړى | نوهغه ته به د هغې نه غوره اجر وركړې شي | اوداسې خلق به

مِّنْ فَزَعٍ يَّوْمَئِذٍ اٰمِنُوْنَ۝ وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ

ديرې | دهغه ورځې نه | محفوظ وى | او هغه څوك | چې راشي | دبدئ سره

د دغې ورځې دويرې نه په امن كښې وى | ...................... اوڅوك چې گناه اوكړى

فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ ؕ هَلْ تُجْزَوْنَ

نو نسكور به اوغورزولې شي | مخونه دهغوئ | په وور كښې | نه دركړې كيږى تاسو ته

نوپرمخې به په دوزخ كښې غوزار كړې شي | (او وئيلې به شى) چې تاسوته صرف دهغو

اِلَّا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ۝

مگر | هغه | چې وئ تاسو | چې كول به مو |

عملونو سزا دركولې شي كوم چې تاسو دنيا كښې كول|

قوله تعالى:- وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ

دقيامت څو نورې نخښې:-الله تعالى دقيامت ويره او دهغې بې آرامى بيانوى په شپيلئ كښې به حضرت اسرافيل عليه السلام دالله تعالى په حكم باندې پوكې وهى هغه وخت به په زمكه ډير خراب خلق وى د ډير وخته پورې به شپيلئ وهى كوم سره چه به ټول پريشان حال شى.بغيرد شهيدانونه چه دالله تعالى په نيز ژوندى دى او رزق وركولې شى. د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه يوه ورځ يوسړى تپوس اوكړوچه دا ته څه فرمائې چه دومره دومره وخت پورې به قيامت راشى. هغوى سبحان الله يا لااله الاالله يا څه بل څه كلمه چه د حيرانتيا په وخت كښې د تعجب په وخت كښې وئيلې شى اوفرمانيله ونى واوره اوس خو مې زړه غوارى چه چاته يوحديث هم بيان نه كړم. مادا وئيلې وو چه زر به لوئې لوئې اهمې خبرې اووينئ بيت الله به خراب شى اودا به وى او دابه وى وغيره. د رسول الله ﷺ فرمان دې چه دجال به زما په امت كښې څلوينښت حصار وى زه په دې نه پوهيږم چه څلوينښت ورځې يا څلوينښت مياشتې او ياڅلوينښت كاله به وى. بيا به الله تعالى (حضرت عيسى عليه السلام) رانازل كړى) هغه به په شكل كښې بالكل د عروه بن

مسعود؄ په شان وي هغه به دا اولتوی او هلاك به ني کړي. بيا به اووه کاله داسې وي چه په هرو دوو کسانوکښې به بغض اودښمني وي.بيا به الله تعالى د شام دطرف نه يوه ښکلې ښکلې هواراوچلوي چه دې سره به هريومؤمن وفات شي اود چا په زړه کښې چه د يوې ذرې برابر ايمان هم وي د هغه روح به هم قبض کړې شي.تردې که څوك د غره په دړ کښې هم ورننوځي نودا هوابه هلته هم لاړه شي اوهغه به هم هلته فناه کړي. اوس به په زمکه باندې بدخلق پاتي سي چه د مرغو په شان سپك او ځناورو غوندې بې عقله وي.دهغوی نه به د نيکئ اوبدئ تميز کول پاسي هغوی له به شيطان راورسي اوواني به چه تاسوشرمېږئ نه چه د دې بتانوعبادت مو پريخې دې؟دوی به بت پرستي شروع کړي الله ﷻ به دوی نه رزق رسوي اوخوشحاله به ني ساتي. دوی به هم په دې مستئ کښې وي چه د شپيلئ دپوك وهلو حکم به اوشي.دچا په غوږ کښې چه آواز پريوځي هم هلته به اخواديخوا شي.دټولونه اول به ني هغه سړې اوري چه د خپلواوښانود پاره به حوض ټيك کوي اوريدو سره به بې هوشه شي اوټول خلق به بې هوشه کيدل شروع شي. بيا به الله تعالى د شبنم په شان باران راووروي په کوم سره چه به دخلقو بدنونه راټوکيږي بيا به په دويم ځل شپيلئ پوك وهلې شي په کوم سره چه به ټول اودريږي آواز به کولې شي چه خلقو د خپل رب طرف ته روان شئ هلته اودريږئ تاسو نه به سوال جواب کولې شي. بيا به فرمانيلې شي داور حصه ترې راوباسه تپوس به کولې شي چه په څومره کښې څومره؟ نواوبه فرمانيلې شي چه هرو زروکښې يوکم زر. دابه وي هغه ورځ چه ماشومان به بوډاګان کړي. دابه وي هغه ورځ چه کله به ډينډئ (درب تجلي) زيارت به کولې شي([1])اولنئ شپيلئ خو به د ويرې شپيلئ وي او دويمه دبې هوشه کيدو اودريمه د بياراژوندي کيدواود رب العالمين په درباركښې د پيش کيدو.د(أَتَوْهُ) قراءت د الف په مدسره هم نقل دې. هريوبه بې وسه خوارذليل مجبور د ماتحتومحکوم د الله تعالى په وړاندې حاضريږي. د يونه به هم نه شي کيدلې چه حکم عدولی اوکړي لکه چه ارشاد دې ﴿ يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ﴾([2])په کومه ورځ چه الله تعالى تاسوراغواړي او تاسو دهغه حمد او ثنا بيانولو سره حکم اومنې. بل آيت کښې دی چه بيا کله هغه تاسو د زمکې نه راوغواړي نوتاسو ټول به اودريږئ راوبه ځئ. د صور په حديث کښې دی چه ټول روحونه به د صور په سوره کښې کيخودې شي اوکله چه بدنونه د قبرونونه راټوکيږي صور به پوك وهلې شي روحونه به والوزي د مؤمنانو روحونه به نوراني وي د کافرانو روحونه به د تيارو اوظلمت والاوي. رب العالمين خالق کل به فرمائي چه زما دې په خپل جلال او زما په عزت قسم وي هر يوروح به خپل بدن ته لاړشي. څنګه چه زهر هر يو رګ اوريشې ته رسي دغه شان به روحونه په بدنونوکښې خوراه شي. اوخلق به د خپل خپل ځائ نه سر ښندې راپاسي به. لکه چه اوفرمانيلې شو په هغه ورځ به د قبرونونو نه داسې داسې په تندئ سره راوځي لکه څنګه چه به نی خپلو عبادت خانو له منډې وهلې.دا اوچت غرونه کوم چه ته ولاړ اوکلك ګورې دا به ذره ذره شي د الوتونکی اوريځو غوندې اخواديخوا ګورې شي. اودا به ته روان اووينې او آخربه ريزه ريزه شي او بې نوم اوبې نښې به شي. زمکه به د صفاتلي په شان بې ښکته پورته شي. د صفت دې د هغه صناع يعنى جوړونکي چه د هغه هريوصنعت د حکمت والا مضبوط پوخ او اوچت دې.دچا چه اوچت اواعلى قدرت په پوره توګه په انساني پوهه کښې نه شي راتلې. دبنديګانو د ټولو اعمال خيراوشر نه هغه خبر دې. دهريوفعل اوکار سزا اوبدله به ضرور ورکوي.د دې اختصار نه پس ني تفصيل بيانولوسره اوفرمانيل چه نيکي اود توحيد اخلاص څوك راوړي هغه به د يوپه بدله کښې لس

---

[1]) صحيح مسلم كتاب الفتن باب ل خروج الدجال ومكثه فيالارض ونزول عيسى ؑ وقتله اياه...:٤ ٢٩٠، السنن الكبرى للنسائي:١١٦٢٩، احمد:٢/١٦٦، ابن حبان:٧٣٥٣.

[2]) ١٧/الاسراء:٥٢.

بدلې اخلي اود هغه ورځې دخطرې نه به بې ويرې وي.اوخلق به په ويره کښې په عذاب کښې وي دې
به په امن اوثواب کښې وي. په اوچتو اوچتو بالاخانوکښې به په راحت اواطمينان کښې وي. اود چا چه
بدئي او بدئي وي ياد چا بدئي د نيکونه زياتې وي د هغې بدله به ملاويږي. د خپلو خپلو کړو بدله به
اخلي.د اکثرو مفسرينونه نقل دي چه د بدئي نه مراد شرک دې.

إِنَّمَآ أُمِرْتُ

| بيشکه هم دا خبره ده | چې ماته حکم شوې دې

| ماته خو صرف دا حکم شوې دې

أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِىْ حَرَّمَهَا

چې زۀ بندګي اوکړم | درب | ددې ښار | هغه رب | چې حرم ئې جوړ کړې دهغې نه

چې زه د دې ښار (مکې) د مالک عبادت اوکړم | چا چې دې ښار ته عزت ورکړې دې

وَلَهٗ كُلُّ شَىْءٍ وَّاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ

او هغه لره دي | هر څيز | او ماته حکم شوې دې | چې شم زۀ | دمسلمانانو(غاړه اېښودونکو) نه

اوهر څه د هغه دی | ..........اوماته دا حکم شوې دې چې (دهغه) د تابعدارو څنې شم

وَاَنْ اَتْلُوَا الْقُرْاٰنَ فَمَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا

او چې اوروم (خلقوته) | قرآن | پس هغه چا | چې صحيح لار بيا مونده | نو بيشکه

اود دې حکم راته هم شوې دې ) چې دا قرآن پاک دې آوروم | نوڅوک چې په نيغه لار روان شي | نو د

يَهْتَدِىْ لِنَفْسِهٖ وَمَنْ ضَلَّ فَقُلْ

هغه صحيح لار مومي | دپاره دفائدې دځان خپل | او هغه څوک | چې بې لارې شوا نو اووايه

خپلې فائدې دپاره به ئې وي | اوڅوک چې ګمراه پاتې شي | نو ته اووايه چې زۀ خو صرف (

اِنَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُنْذِرِيْنَ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ

چې بيشکه | زۀ | دخبردارونکو نه يم | او اووايه | چې ثنا خاص الله لره ده

دالله ﷻ د نافرمانئ دانجام نه) ويرونکې يم | اودا اووايه چې ټول تعريفونه د الله ﷻ دپاره دی

سَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ فَتَعْرِفُوْنَهَا وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ

زر به اوښائی تاسو ته | نښې خپلې | پس اوبه پيژنئ تاسو هغه | اونۀ دې رب ستا | ناخبره

اوهغه به درته ډير زر خپلې نخښې اوښائی | نوتاسو به ئې ښې اوپيژنئ | او ستا رب ستاسو

عَمَّا تَعْمَلُوْنَ

دهغه کارونو نه | چې تاسو ئې کوئ |

دکارونو نه بې خبره نه دې

**قوله تعالی:- إِنَّمَآ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ**

**د کعبه عزت اوحرمت او توحید بیان:-** الله ﷻ خپل عزت مندنبی کریم ﷺ ته فرمائی چه تاسو ﷺ په خلقو کښې اعلان اوکړئی چه زه د دې مکې دښارد رب دعبادت اودهغه د حکم منلومامووریم. لکه چه ارشاد دې چه اې خلقو که ستاسو زما په دین کښې شك وی نو وی دې زه خو به د چاچه تاسو عبادت کوئی کله هم د هغوی عبادت اونه کړم. زه هم د هغه رب تعالی عبادت کونکې یم کوم چه ستاسودمرګ او ژوندمالك دې.دلته دمکې طرف ته د ربوبیت اضافت صرف دبزرګئی اوعزت د اظهار دپاره دې.لکه چه فرمائیلی دی ﴿فَلْيَعْبُدُوا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ﴾ (۱)دوی له پکاردی چه ددې ښارد رب ﷻ عبادت اوکړی چاچه دوی د نورو خلقو د اولګې په وخت کښې ماړه اود نورو د ویرې په وخت کښې بې ویرې اوساتل. دلته فرمائی چه دابښار دحرمت اوعزت والا هم هغه جوړکړې دې.لکه بخاری اومسلم کښې دی حضور ﷺ د مکې د فتح په ورځ اوفرمائیل چه دا ښار د هغه وخت نه د حرمت دې کله نه چه الله ﷻ آسمان اوزمکه پیداکړی دی. دې ته به د الله ﷻ د حرمت ورکولوسره هم د حرمت والا وی تر هغه وخته پورې چه قیامت راشی مه ددې ازغی پریکوئی مه ددې ښکار ویروئی مه په دې کښې د چا پریوتلې څیزاوچتوئی اوچه څوك نی اوپیژنی اومالك ته نی رسول غواړی دهغه دپاره جائز دی.ددې وابښه هم مه پریکوئی الخ(۲)داحدیث په ډیروسندونوسره په ډیروکتابونوکښې نقل دې لکه چه د احکامو په کتابونو کښې تفصیل موجود دې.ولله الحمد.بیاد هغه خاص څیز ملکیت ثابتولوسره خپل عام ملکیت ذکر فرمائی چه د هرڅیز رب اومالك هم هغه دې د هغه نه بغیرڅوك نه مالك دې نه معبود.

**قوله تعالی:- وَأَنْ أَتْلُوَا الْقُرْآنَ**

**درسول کریم ﷺ د رسالت بیان:-**اوماته هم داحکم دې چه زه موحد مخلص تابعداراوحکم منونکې شم.اوماته دا هم فرمائیلې شوی دی چه خلقو ته دالله تعالی کلام اورولوسره واوروړ. لکه چه فرمان دې مونږ دا آیاتونه اودا حکمت ذکر ستا په وړاندې تلاوت کوی.بل آیت کښې دی چه مونږ تاته د موسی ﷺ اود فرعون صحیح واقعه بیانوو.مطلب داچه زه رباني تبلیغ کونکې یم زه تاسو رابیداروم تاسو ویروم که زما منئی اوپه نیغه لار راځئی نو هم خپله ښیګړه به کوی اوکه زمانه منئی نو زه به خپل د تبلیغ فرض پوره کړم او اوزګاربه شم. وړاندینورسولانوهم داسې کړې وود الله تعالی کلام نی اورسولو اوخپله لمن نی پاکه کړه.لکه څنګه چه ارشاد دې په تاباندې صرف رسول دی حساب زمونږ په ذمه دې. بل ارشاددې چه ته صرف ویرونکې نی اوپه هرڅیزباندې وکیل هم الله ﷻ دې.دالله تعالی دپاره تعریف دې چه په بې خبرې کښې هغوی ته عذاب نه ورکوی بلکه اول ورته خپل پیغام رسوی خپل حجت ختمه وی ښه اوبد ورته ښائی مونږ به تاسو ته داسې آیاتونه اوښایو چه تاسو به پخپله قائل شئی.

لکه چه ارشاد دې ﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ وَفِي أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ الْحَقُّ ۗ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ (۳) مونږبه پخپله ددوی په نفسونوکښې اوددوی نه ګیرچاپیره داسې نښې وراوښایوپه کوموسره چه به هغوی ته حق ښکاره شی.

**قوله تعالی:- وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ**

**الله تعالی لوئې وړوکی یوڅیز هم پټ نه دې:-** الله تعالی ستاسو دکړونه غافل نه دې بلکه دهغه علم هر لوئ اوړوکې څیز راګیرکړې دې. دنبی کریم ﷺ ارشاد دې ګورئی خلقو الله تعالی په هیڅ یو کار کښې د عمل نه غافل مه ګنړئی د یویوماشی پویو پتنګ او یویو ذرې نه خبردې. (۱)

(۱) ۱۰٦/قریش:۳.

(۲) صحیح بخاری کتاب جزاء الصید باب لایحل القتال بمکة:۱۷۳٤، صحیح مسلم:۱۳۵۳، ابوداؤد:۲۱۸، ترمذی:۱۵۹، ابن حبان:۳۷۲۰، احمد:۳۱۵/۱.

(۳) ٤۱/حم السجده:۵۳.

دعمربن عبدالعزیز رحمه الله نه روایت دي که چرې هغه غافل وي نود انسان د قدمونونه کوم چه هوا ورانوي به نی غفلت کولو خوهغه د دې نښوهم حافظ او عالم دي. امام احمدبن حنبل رحمه الله به اکثر دا دوه شعرونه لوستل چه یاخوهم د هغوی دی او یا د بل چا دی:

اذاما خلوت الدهر یوما فلا تقل خلوت ولکن قل علی رقیب
ولا تحسبن الله یغفل ساعة ولا ان ما یخفی علیه یغیب

کله هم چه ته په خلوت اویوازیوالی کښې نی نوخپل ځان خان له اویوازې مه ګڼره بلکه خپل رب هم هلته حاضراوناظرګڼره هغه یوساعت هم دچانه غافل نه دې اونه څه پټ فنا څیز د هغه د علم نه بهردې.

(الحمدلله) دَ الله تعالی په فضل اواوکرم سره دَ سورت نمل تفسیرختم شو.

## تفسیر د سورت قصص

مسنداحمدکښې حضرت معدی کرب رحمه الله فرمائی چه مونږ د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه خواته راغلواوهغه ته مودرخواست اوکړو چه مونږ ته د سورت (طٰسٓمٓ) د سلو آیاتونووالا لوستلو سره واوروی. نوهغوی اوفرمائیل چه ماته خودا یادنه دې تاسو لاړشئ دخباب بن ارت رضی الله عنه نه واورئ هغه پخپله درسول الله ﷺ نه اوریدلې دې.مونږ هغوی رضی الله عنه له لاړواوهغوی مونږ ته دامبارك سورت اولوستلو.[1][2]

| ایاتونه | | سورة القصص مکیة وهی ثمان وثمانون ایة وتسع رکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | | |
| ۸۸ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۹ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| طٰسٓمٓ ﴿۱﴾ | تِلۡكَ اٰیٰتُ | الۡكِتٰبِ الۡمُبِیۡنِ ﴿۲﴾ | نَتۡلُوۡا | عَلَیۡكَ | |
| ط .س . م | دا ایتونه | دکتاب مبین دی | او روږ مونږه | تاته | |
| طسم | دا دیو داسې کتاب ایتونه دی چې ښکاره بیانونکې دې | | مونږ تا ته د | | |
| مِنۡ نَّبَاِ مُوۡسٰی | وَفِرۡعَوۡنَ | بِالۡحَقِّ | لِقَوۡمٍ | یُّؤۡمِنُوۡنَ ﴿۳﴾ | اِنَّ |
| دقیصې دموسی | او دفرعون نه | په حقه سره | دپاره دهغه خلقو | چې ایمان راوړی | بیشکه |
| مونږ دموسی علیه السلام اود فرعون رښتونې واقعات د هغوخلقو دپاره بیانوو چې ایمان راوړی | | | | | بیشکه |
| فِرۡعَوۡنَ | عَلَا | فِی الۡاَرۡضِ | وَجَعَلَ | اَهۡلَهَا | شِیَعًا |
| فرعون | لوئې اوکړه | په زمکه کښې | او کړل نې | اوسیدونکی دهغې | ډلې ډلې |
| چې فرعون (دمصر) په زمکه کښې ډیر تکبر کړې وو | | | اود هغې خلق نې ډلې ډلې کړی وو | | چې یوه |
| یَّسۡتَضۡعِفُ | طَآئِفَةً | مِّنۡهُمۡ | یُذَبِّحُ | اَبۡنَآءَهُمۡ | |
| چې کمزوری (ذلیله) کوله به نې | یوه ډله | دهغوئ نه | ذبحه کول به نې | ځامن دهغوئ | |
| ډله (بنی اسرائیل) به نې کمزورې کوله | | (په دې طریقه چه) د هغوئ ځامن به نې ذبح کول | | | |

---

[1] ابن ابی حاتم.
[2] احمد:۴۱۹/۱ المعجم الکبیر: ۳۶۱۴ حلیه الاولیاء:۱۴۳/۱.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَسْتَحْيِ | نِسَآءَهُمْ ۭ | اِنَّهٗ | كَانَ | مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ ۝ |
| او ژوندي به ئې پرېښودلې ابنځي (ښځې) | دهغوئ | بېشکه هغه | وو | دفساد کونکونه |

اوجينکۍ به ئې (د خدمت دپاره) ژوندئې پرېښودې | هغه ډېر د فساد کونکو ځنې وو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَنُرِيْدُ | اَنْ نَّمُنَّ | عَلَى الَّذِيْنَ | اسْتُضْعِفُوْا | و |
| اواراده لرله مونږه | چې احسان اوکړومونږه | په هغه کسانو باندې | چې کمزورې (ذليله) ساتلي شوې وو | |

اومونږ دا غوښتل چې دکومې دلې زور کمولې شي هغې باندې مهرباني اوکړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي الْاَرْضِ | وَنَجْعَلَهُمْ | اَىِٕمَّةً | وَّنَجْعَلَهُمُ | الْوٰرِثِيْنَ ۝ |
| په زمکه کښې | او جوړ کړل مونږ هغوئ لره | امامان | او جوړ کړل مونږه هغوئ | وارثان (دزمکې) |

اودوئ (دملک) سرداران جوړ کړو | اوهم دوئ (د دې زمکې) وارثان جوړ کړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَنُمَكِّنَ | لَهُمْ | فِي الْاَرْضِ | وَنُرِيَ | فِرْعَوْنَ | وَهَامٰنَ |
| او چې اقتدار ورکړو مونږ | هغوئ لره | په زمکه کښې | اواوښايو مونږ | فرعون ته | او هامان ته |

او په ملک کښې ورته اقتدار ورکړو |.................... ....................اوفرعون اوهامان

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَجُنُوْدَهُمَا | مِنْهُمْ | مَّا | كَانُوْا | يَحْذَرُوْنَ ۝ |
| او لښکرو دهغوئ ته | دطرفه دهغوئ نه | هغه څيز | چې وو هغوئ | چې يريدل به دهغې نه |

اوددوئ لښکرو ته د دې (کمزوروخلقو) دلاسه هم هغه انجام اوښايو دکوم نه چې دوئ ويريدل

**قوله تعالى:- اِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْاَرْضِ**

**د فرعونسرکشي او په بنی اسرائيلو باندې ظلمونه** : دحروف مقطعه بيان ورانديې تيرشوې دې.دا آياتونه دی د واضح ښکاره روښانه صفا اوکولاوقرآن پاك.د تولوکارونواصليت تيرې شوې او راتلونکې خبرې په دې کښې دی اوتولې رښتيااوښکاره.مونږستاپه وړاندې(اې رسول الله ﷺ)دموسی ﷺاوفرعون رښتوني واقعه بيانوو.لکه چه په نوروآياتونوکښې دی مونږ ستاپه وړاندې بهترين واقعه بيانوو داسې لکه چه ته دهغې دکيدو په وخت کښې هلته موجود وې. فرعون يومتکبر سرکش او بددماغ انسان وو هغه په خلقوباندې ډيره خرابه قبضه لګولې وه اوهغوی ئې په خپل مينځ کښې په جنګ کړې وو او په هغوی کښې اختلاف اچولې وو دې سره ئې هغوی کمزورې کړی وواوپخپله ئې په هغوی باندې په جبر او ظلم سره حکومت کولو خاص کر بنی اسرائيل خو دې ظالم د نيست او نابودکولواراده کړې وه. سره د دې چه په مذهبی اعتبارسره هغوی په دغه وخت کښې دټولونه ښه وو. هغه دوی ډير زيات ذليل کړې ساتلې وو تول خراب کارونه به ئې هم د هغوی نه اخستل شپه ورځ به دا غريبانان په بيګارکښې راښکلې کيدل. په دې باندې به هم دهغه غصه نه يخې ده.دهغوی نارينه اولاد به ئې قتل کولو دې د پاره چه دوی دطاقت والا جوړنه شي اود دې دپاره هم چه دوی ذليل اوخواروی اوددې ويرې هم چه هغه وئيل چه هم په دوی کښې به د يوماشوم د لاسه زما داسلطنت تباه کيدونکې دې.

**قوله تعالى:- يُذَبِّحُ اَبْنَآءَهُمْ وَيَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ ۭ**

**دذبح سبب**:.خبره داسې ده چه کله حضرت ابراهيم ﷺ دمصردحکومت نه د خپلې بی بی حضرت ساره رضي الله عنها سره روان وو اود دغه ځائ سرکش بادشاه حضرت ساره بی بی د خپلې وينځې په توګه د دوی نه واخسته چه هغه الله تعالى د دې کافرنه په حفاظت سره اوساتله اود هغه په دې باندې د لاس اوچتولو

قدرت حاصل نه شو نوهغه وخت حضرت ابراهيم ﷺ دپشنګوني په توګه فرمانيلي وو زما د اولادنه به ديوهلك په لاس باندې دمصرقوم دا ملك خې اوددوى بادشاه به دهغه په وړاندې په ذلت سره هلاكيږي. په بني اسرائيلوكښې داروايت راروان وو اود هغوى په درس كښې هم دا ووكوم چه به قبطيانوهم اوريدوكوم چه د فرعون د قوم نه وو هغوى په درباركښې مخبرى اوكړه كله نه چه فرعون دا ظالمانه او سفاكانه قانون جوړكړوچه د بنى اسرائيلوماشومان قتل كونى اود هغوى جينكنى پريږدنى. ولې چه رب ته څه منظوروى هغه خو به په خپل وخت كيږى. حضرت موسى ﷺ ژوندې پاتې شواود هغه په لاس نى دا ظالم ذليل اوخواركړو. الحمدلله. فرمانى چه مونږ په دې ضعيفانو اوكمزورو باندې رحم كول غوښتل ښكاره خبره ده چه د الله تعالى غوښتنه خو به پوره كيدل خويقيني دى لكه چه فرمانى ﴿وَاَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِيْنَ كَانُوْا يُسْتَضْعَفُوْنَ مَشَارِقَ الْاَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا ؕ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنٰى عَلٰى بَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ ۙ بِمَا صَبَرُوْا ؕ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهٗ وَمَا كَانُوْا يَعْرِشُوْنَ﴾[1] مونږ دا پاتې شوى پريوتلې قوم د هغوى د هرڅيز مالك جوړكړو. فرعون د خپل ټول طاقت ښكاره كونه ئى اوكړه ولې هغه ته خود رب د طاقت اندازه نه وه. آخر دالله تعالى اراده غالب شوه اودكوم يوماشوم د وجه نه چه ئى په زرګونو بې ګناه ماشومانوناحقه وينې تونې كړې هغه ماشوم الله تعالى هم د هغه په غيږ كښې لونى كړو او هم د هغه د لاسه د هغه لښكرواود هغه د مال اوملك خاتمه اوكړه دې د پاره چه هغه پوهه شى او اومنى چه هغه د الله تعالى يوذليل مسكين بې لاسه بې پښو غلام وو اود رب په غوښتنه باندې د چاغوښتنه غالب كيدې نه شى. حضرت موسى ﷺ له اود هغه قوم له الله تعالى د مصر حكومت وركړو اوفرعون چه د چانه ويريدلو هغه مخامخ راغلو ودې تباه اوبربادشو. فالحمدلله.

وَاَوْحَيْنَاۤ اِلٰۤى اُمِّ مُوْسٰۤى اَنْ اَرْضِعِيْهِ ۚ فَاِذَا خِفْتِ

او اشاره اوكړه مونږه | مور دموسى عليه السلام ته | چې تې وركړه دۀ ته | نو هر كله چې | اوويريږې ته |

اومونږ دموسى ﷺ مور ته الهام اوكړو | چې ته دۀ ته تې وركوه | نو كله چې پرې ته اوويريږې

عَلَيْهِ فَاَلْقِيْهِ فِى الْيَمِّ وَلَا تَخَافِىْ وَلَا تَحْزَنِىْ ۚ اِنَّا

په دۀ باندې | نو اوغورزوه دې | په درياب كښې | اومه ويريږه ته | اومه غمژنه كيږه ته | بيشكه مونږه

نو په درياب كښې ئې واچوه | اوويريږه مه | او غمژنه كيږه مه | ..................مونږ به دا

رَآدُّوْهُ اِلَيْكِ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۞ فَالْتَقَطَهٗۤ

به واپس راولو دې | تاته | اوجوړونكى يو دۀ لره | درسولانونه | پس راپورته كړو دۀ لره

بچې تاته واپس دركووا او دې به د خپلو پيغمبرانو نه يو پيغمبر جوړووا نود فرعون د كور خلقو

اٰلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَّحَزَنًا ؕ اِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامٰنَ

كوروالو دفرعون | چې شي هغه | دپاره دهغوى | دشمن | او (سبب) دغم | بيشكه فرعون او هامان

موسى ﷺ (ددرياب نه) رااوچت كړو | چې د هغوئ د دښمنۍ اودغم سبب شي | بيشكه فرعون هامان

وَجُنُوْدَهُمَا كَانُوْا خٰطِـِٕيْنَ ۞ وَقَالَتِ امْرَاَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ

او لښكري ددواړو | وو | غلط كار كونكي | اواووئيل | ښځې | دفرعون | يخوالي

او د دوئ لښكرې ټول غلطكار وو | اود فرعون ښځې اووئيل چې دا (هلک) زما او ستا دواړو دپاره

[1] ) ۷/الاعراف:۱۳۷.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَيْنٍ | لِّيْ | وَلَكَ | لَا تَقْتُلُوْهُ | عَسٰى | أَنْ يَّنْفَعَنَآ |
| دسترگو دي | مالره | او تالره | مه وژنئ دې | كيدې شي | چې فائيده به راكړي مونږ ته |
| دسترگو يخوالې دې | دې مه قتلوئ | ............ كيديشي چې مونږ ته فائده راكړي | | | |
| أَوْ نَتَّخِذَهٗ | وَلَدًا | وَّهُمْ | لَا يَشْعُرُوْنَ ⑨ | | |
| يا به اونيسو مونږ دا لره | خوئي | او هغوئ | نه پوهيدل (په انجام) | | |
| يائې په خويتوب اونيسو | اوهغوئ (په اصل حال) نه پوهيدل | | | | |

قوله تعالى:- وَأَوْحَيْنَآ إِلٰى أُمِّ مُوسٰى أَنْ أَرْضِعِيْهِ

**ځوک چه الله ﷻ يې كول غواړي هغه ځوک هم نه شي وژلې:-** روايت دې چه كله دبنى اسرائيلوپه زرگونو بچي قتل كړې شو نوقبطيانوته داويره پيداشوه كه بنى اسرائيل ختم شونوچه ځومره ذليل كارونه او بې هوده خدمتونه حكومت دهغوى نه اخلي چرته زمونږ نه ئې وانخلي نوپه درباركښې غونډه اوشوه او خبره اوتړلې شوه چه يوكال ئې وژنئې اويوكال ئې مه وژنئې.حضرت هارون عليه السلام په هغه كال باندې پيدا شو په كوم كال چه ماشومان نه شوقتل كولې. ولې موسى عليه السلام په هغه كال باندې پيدا شو په كوم كال چه به عام توگه باندې ماشومان د تيغ نه ويستلې شو. ښځو به گشت كولواود حامله ښځو به ئې خيال ساتلودهغوى نومونه به ئې ليكل د حمل كيدو په وخت به دابښځې ورتلې كه جينئى به كيده نو واپس به تلې اوكه هلك به كيدونو زر به ئې جلاديانو ته خبروركولو. دې خلقو به ښه تيرې چړې راوړې اوهم هغه وخت به راتلل اودمورپلار په وړاندې به ئې ماشوم ټكړې ټكړې كولو اوتلل به.دحضرت موسى عليه السلام دمور چه كله حمل شو نود عامو خلقو غوندې د هغې حمل نه ښكاريدو اوكومې ښځې چه به دې كار باندې مقررې وې اوځومره دايانې به راتلې چاته هم د حمل پته اونه لگيدله تردې چه حضرت موسى عليه السلام پيداهم شو. د هغوى مورته دې وخت كښې ډيره سخته ويره پيدا شوه چه هر وخت به ويريدله اودې ماشوم سره ئې مينه هم دومره زياته وه چه ديوې موربه هم خپل بچي سره دومره مينه نه وى. په يوه مور باندې څه موقوف دى الله ﷻ د موسى عليه السلام مخ داسې جوړكړې ووچه د چانظر په هغه باندې پريوتلو هغه په زړه كښې به ئې محبت كيناستولكه چه د الله تعالى ارشاد دې ﴿وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّيْ ۚ وَلِتُصْنَعَ عَلٰى عَيْنِيْ﴾[1] ماد خپل خان محبت په تا باندې اچولې وو.اودموسى عليه السلام مور بى بى به هروخت په خطره اوويره كښې خفه اوسيدله نوالله تعالى د هغې په زړه كښې خيال واچولوچه په ده باندې پئى څكه اود ويرې په وخت كښې دې په درياب د نيل كښې لاهوكړه د كوم په غاړه چه د هغې كور وو. دغه شان ئې يود پيتئى اوصندوقچه جوړه كړه په دې كښې ئې حضرت موسى عليه السلام كيخودو. پئى به ئې پرې څكول او په دې كښې به ئې اوده كولو كله چه به څه د ويرې موقعه راتله داصندوق به ئې په درياب كښې بهيولواوپه پړى باندې ئې هغه تړلې وو دويرې تلو نه پس به ئې هغه راښكلو.يوځل يوسرې داسې كورته راغلوچه دهغه نه دموسى عليه السلام موراوويريدله رامنده ئې كړه او ماشوم ئې په صندوق كښې واچولو او په درياب كښې ئې ورلاهوكړو او په تندئى سره پرې تړل هيرشو. صندوق د اوبو چپوسره په تيزئى سره لاړو او په بهيدو بهيدوكښې د فرعون محل سره خواكې تيريدو نووينځو راوچت كړو اود فرعون بى بى له ئې يورو كولاونې كړو وئې كتل چه په هغې كښې د يونورانى ښائسته مخ والا صحيح سالم ماشوم پروت وو د هغه په كتوسره د هغې زړه د ده د مينې نه ډك شو اود دې ماشوم دې ښكلې شكل د هغې په زړه كښې ځائ اوكړو. په دې كښې هم د رب عزوجل مصلحت وو چه د فرعون بى بى

---

[1] ۲۰/طه:۳۹.

ته نیغه لاراوښاني اود فرعون په وړاندې د ده ویره راوړي اود هغه غرور ختم کړي. نوفرماني چه آل فرعون دا صندوقچه راوچته کړه اوآخر د هغوی د دښمنۍ او د غم اوخفګان ذریعه جوړه شوه. محمدبن اسحاق رحمه الله وغیره فرماني د ﴿لیکون﴾ لام لام عاقبت دې د تعلیل لام نه دې ځکه چه د دوی اراده داسې نه وه.په ظاهره دا ټیك هم معلومیږي.خو معنی ته په کتلوسره که لام د تعلیل لام اوګنړلې شي نوهم په کښې څه حرج نه ښکاري ددې دپاره چه الله تعالی دصندوقچې د اوچتولو دپاره د دې وجه نه جوړ کړې وو چه دې د هغوی د پاره دښمن جوړ کړي اود هغوی دغم او خفګان ذریعه نې جوړکړي. بلکه په دې کښې یود مزې خبره داهم ده چه د چانه هغه بچ کیدو هم د هغوی په سر وراوختلو.هم په دې وجه د دې نه پس نې اوفرمائیل چه فرعون هامان اود هغه ملګري خطارکارو.

**قدریه ته د عمر بن عبدالعزیز خط:-** روایت دې چه عمر بن عبدالعزیز رحمه الله قدریه کوم خلق چه د تقدیر نه منکر دی په یوخط کښې اولیکل چه موسی علیه السلام په وړاندېنی علم د فرعون دښمن اود هغه د پاره د غم او خفګان ذریعه وه لکه څنګه د قرآن مجیدد آیت نه ثابته ده خوتاسو وائې چه که فرعون غوښتل نو موسی علیه السلام به د هغه امدادی اودوست وو؟ بیافرماني چه داماشوم کتلوسره فرعون رانیغ شوچه هسې نه چرته اسرائیلیه ښځې داراغورزولې وی اوچرته داهم هغه نه وی د چا د قتل کولود پاره چه ما په زرګونوماشومان قتل کړل. دې سوچ کولوسره هغه داهم قتل کول غوښتل خود هغه بی بی حضرت آسیه رضی الله عنها د ده سفارش اوکړو. فرعون ئې د هغه د ارادې نه منع کړو چه دامه قتل کوه ممکن ده چه دې زما اوستاد سترګویخوالې جوړشي. فرعون جواب ورکړو چه ستاد سترګو یخوالې خو به وی ولې ماته خود سترګو یخولوهیڅ ضرورت نشته. د الله تعالی شان ته ګورئی چه هم دغه شان اوشو.

آسیه رضی الله عنها ته الله تعالی خپل دین ورنصیب کړو اود حضرت موسی علیه السلام په وجه باندې هغې ته هدایت ملاوشو اودامنکر الله تعالی دخپل نبی په لاس باندې هلاك کړو.د نسائی وغیره په حواله سره د سورت طه په تفسیرکښې فتون په حدیث کښې دا قصه پوره بیان شوې ده. حضرت آسیه رضی الله عنها فرمانی کیدې شی چه دې مونږ ته څه نفع راورسوی د هغې امید الله تعالی پوره کړو. په دنیاکښې حضرت موسی علیه السلام د هغې د هدایت ذریعه جوړشو اوپه آخرت کښې جنت ته د تلو. نور وائی چه داهم کیدې شی چه مونږ دې خپل بچې جوړکړو. د هغې هیڅ اولاد نه وونوغوښتلې چه حضرت موسی علیه السلام په خپل خوئ سره اونیسی. په دوی کښې په چا کښې هم عقل نه ووچه قدرت څنګه پټه پټه خپله اراده پوره کوی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاَصْبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوْسٰی | فٰرِغًا ط | اِنْ كَادَتْ | لَتُبْدِیْ بِهٖ |
| اوشو زړهٔ دمور دموسی | خالي دصبر نه (بې قراره) | نزدې وه | چې ښکاره کړې وې هغې راز دهغې |
| اود موسی علیه السلام د مور زړهٔ ناقلاره شو | نزدې وه چې د موسی علیه السلام حال ئې (دفرعون خلقو ته) ښکاره کړې وې | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَوْلَآ اَنْ | رَّبَطْنَا | عَلٰی قَلْبِهَا | لِتَكُوْنَ | مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ ۝ |
| که چرې نهٔ وې | مضبوط کړې مونږ | زړهٔ دهغې | دپاره ددې چې شی | دباورکونکونه |
| که مونږ د هغې زړهٔ مضبوط کړې نه وې | د دې دپاره چې هغه دې په مونږ کلك یقین اوساتی | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالَتْ | لِاُخْتِهٖ | قُصِّیْهِ | فَبَصُرَتْ بِهٖ | عَنْ جُنُبٍ |
| او وې وئیل | خور دهغه ته | چې څه روستو په دهٔ پسې | نو کتل هغې هغه ته | دلرې نه |
| اوهغې د موسی علیه السلام خور ته اووئیل | چې ته ورپسې روستو څه | نوهغې موسی ته دلرې نه (پټ پټ) کتل | | |

وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝ وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ

اوهغوئ (خلق) | نهٔ پوهیدل | او حرام کړي وې مونږه | په هغه باندې | تی ورکونکی ښځی |

اود فرعون خلق پرې نه خبریدل | اومونږ داول نه په هغه باندې دائی ګانې منع کړې وې

مِنْ قَبْلُ فَقَالَتْ هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰٓى اَهْلِ بَيْتٍ يَّكْفُلُوْنَهٗ

دمخکښې نه |نواووئیل (خورنې) |آیا خبر درکړم زهٔ تاسو ته | په اهل دیو کور | چې پالنه به کوی ددهٔ

(چې دهیچا تې ئې نه اخستو)نود موسی خور اووئیل |آیا زهٔ درته یوداسې کورنئ اوښایم |چې د ده پالنه

لَكُمْ وَهُمْ لَهٗ نٰصِحُوْنَ ۝ فَرَدَدْنٰهُ اِلٰٓى اُمِّهٖ

ستاسو دپاره | او هغوئ به | دپاره دهغه | خیر خواهان وی | واپس راوستو مونږ هغه | مور دهغه ته

به ستاسو دپاره کوی | اوهغوی به ددهٔ خیرخواه وی|نو مونږ هغه خپلې مور ته په واپس کړو

كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ وَلِتَعْلَمَ اَنَّ

دپاره ددې | چې خوږې شی | سترګې دهغې | او غمژنه نشی | او چې پوهه شی | چې بیشکه

چې د هغې سترګې پرې یخې شی | او چې غمژنه نه وی | ...........او چې په دې پوهه شی چې

وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

وعده دالله | رښتینی ده | ولیکن | زیات خلق ددوئ | نهٔ پوهیږی |

د الله ﷻ وعده حقه ده | خو زیات خلق په دې (خبرو) نه پوهیږی |

قوله تعالی:- وَاَصْبَحَ فُؤَادُ اُمِّ مُوْسٰى فٰرِغًا

**د موسیؑ پالنه دفرعون په کورکښې:-** دموسی ؑ مورچه کله هغه په صندوقچه کښې واچولواود فرعونیانود ویرې په دریاب کښې لاهوکړو نوډیره پریشانه شوه اوبغیردالله تعالی د رښتونی رسول او د خپل خیګر ټکرې موسی ؑ نه د هغې دبل څه څیز خیال پاتې نه شو.صبر اوآرام ئې لاړو په زړه کښې به ئې دموسیؑ د خیال نه بل هیڅ خیال نه راتلو.که د الله تعالی دطرف نه د هغې د زړه ساتنه نه کیدله نوهغې به په بې صبرئی کښې راز ښکاره کړې وو خلقوته به ئې وئیل چه دغه شان زماماشوم ضائع شو.ولې الله تعالی د هغې زړه صبرکړو داډګیرنه اوتسلی ئې ورکړه اوهغې ته ئې کامل یقین ورکړوچه ستاماشوم به تاته خامخا ملاویږی.دموسی ؑ مور بی بی خپلې مشرې لورته چه لږه غوندې په عقل وه اوفرمائیل چه لورې ته دې صندوقچې ته ګوره اوپه غاړه غاړه ورسره څه ګوره چه څه کیږی؟ ماته خبر اوکړه نودې د لرې نه هغې ته کتل او روانه وه خوپه داسې طریقه اوناجاره کښې چه بل چاته پته هم اونه لګی چه داد دې خیال ساتی او ورسره ورسره روانه ده. د فرعون محل ته په رسیدو اود هغه دوینځو راخستو پورې خود هغه خور بی بی اوکتل بیا هلته بهر اودریده چه کیدې شی څه معلومات اوشی چه دننه څه کیږی. هلته دا اوشوچه حضرت آسیه ؓ فرعون د هغه وینې تویولونه منع کړو اد ماشوم ئې په خپله پالنه کښې واخستو. په شاهی محل کښې چه څومره دایانې وې ماشوم ئې ټولونه ورکړو هریوپه ډیر محنت او مینه سره په ده باندې د پئیوڅکلوکوشش اوکړوخود الله تعالی په حکم موسی ؑدیوې ښځې نه هم یوګوټ پئی اونه څکل آخرئی دخپلووینځوپه ذریعه بهر اوویستلو چه چرته بهر څوك دائی پیداکړئی.اود چا پئی چه اوڅکی هغه دلته راولئی. رب العالمین ته دامنظور نه وه چه د هغه نبی دې د مورنه بغیرد بل چا پئی اوڅکی اوپه دې کښې د ټولونه لوئی مصلحت داوو چه په

دي بهانه موسى ﷺ خپلې مورته اورسي. وينخوچه كله هغه بهر رااوويستلو نو خورئي اوبيژندلو خو دوى باندې هيڅ هم ظاهر نه كړل اونه دوى ته پخپله څه پته اولګيدې شوه. د هغه مور خو اول ډيره پريشانه وه خود دې نه پس الله تعالى هغې ته صبر اوآرام وركړى وو اوهغه چپ او په تسلئى سره وه. خورئي ورته اووئيل چه تاسو دومره ولې پريشانه ئې؟ هغوى وئيل چه داماشوم د يوې دائى پئى هم نه څكي مونږ د ده د پاره د يوې دائى لټون كوو. دې اوريدو سره د كليم الله خوربې بى اووئيل كه تاسو وائې نو زه د يوې دائى پته دركړم؟ممكن دى چه دا ماشوم د هغې پئى اوڅكى اوهغه د ده پرورش اوكړى اود ده خيرخواهى اوكړى. دې اوريدو سره د هغوى څه شك غوندې پيدا شوچه داجيننى د دې ماشوم د اصليت اود ده د مور پلار نه خبرده دائى راګيره كړه او دې نه ئې تپوس اوكړو تاته څه معلومه ده چه هغه ښځه به د ده كفالت اوخيرخواهى كوى؟ هغې زر جواب وركړو سبحان الله څوك به دانه غواړى چه په شاهى دربار كښې دې دهغه عزت اواكرام وى اود هغه د انعام په خاطر به څوك دې ماشوم له پئى نه وركوى؟ د هغوى په عقل كښې هم راغله چه زمونږ اولنې ګمان غلط ووداخوتيك وائى دا پريږدئى اووئيل ښه ده رازه د هغوى كور راته اوښايه. دا هغوى سره خپل كورته راغله دخپلې مور طرف ته ئې ارشاره اوكړه چه دې له ئې وركړئى نو شاهى نوكرانوهغه ماشوم دې ته وركړوماشوم ددې پئى اوڅكل ډيرزرداخبرحضرت آسيه ﵂ ته وركړې شو. دې اوريدو سره هغه ډيره خوشحاله شوه اوهغه ئې محل ته راوغوښتله اوډير څه انعام اواكرام ئې وركړو. خودا پته ورته نه وه چه په واقعې كښې هم دابښځه ددې ماشوم خپله مور ده. صرف په دې وجه چه موسى ﷺ دهغې پئى څكلې وودهغې نه ډيره خوشحاله شوه ديوڅو ورځو پورې خو هم داسې كار روان وو. آخريوه ورځ حضرت آسيه ﵂ اووئيل زما خواهش دې چه ته هم محل ته راشه هم دلته اوسيږه خوره څكه اودې ماشوم ته پئى وركوه. دموسى ﷺ مور وئيل چه داخومانه نه كيږى زه د بال بچ ښځه يم زما خاوندهم دې زه به ده ته په خپل كور كښې پئى وركوم بيابه ئې تاسو كره راليګم. هم دا مقررشوه اوپه دې باندې دفرعون بى بى هم رضامندشوه. د موسى ﷺ د مور ويره په امن سره فقيرى په مالدارئى سره اولګه په مړه سره اوذلت په عزت سره بدل شو. هره ورځ به ئې انعام اواكرام اخستلو خوراك څښاك اوكپړې وغيره به ورته په شاهى طريقه ملاويدلې خپل خوږ ماشوم به ئې په خپله غيږ كښې پاللو. يوه شپه يا يوه ورځ ياد يوې شپې ورځې نه پس الله تعالى د هغې مصيبت په راحت سره بدل كړو.

**څوك چې حلاله كټه كوى او د الله ﷻ نه ويره كوى نو دهغه مثال د موسى ﷺ دمور دې:-** په حديث شريف كښې دى چه كوم سړې خپل كارروزګار كوى اوپه دې كښې د الله تعالى ويره اوزما د سنتولحاظ ساتې دهغه مثال د موسى ﷺ د مور په شان دې چه هم په خپل بچى باندې پئى څكوى اواجرت هم اخلى(١) دالله تعالى ذات پاك دې اوهم د هغه په لاس كښې ټول كارونه دى هم د هغه غوښتنه كيږى او كوم يوكار چه هغه نه غواړى هغه هيڅ كله نه كيږى. يقينًا هغه د هرهغه سړى امدادكوى څوك چه په هغه باندې توكل اوكړى. د هغه حكم منونكې دست ګير هم هغه دې اوهغه د خپلو نيكانو بنديګانوپه سخت وخت كښې په كارراځى اود هغوى تكليفونه اخواكوى اود هغوى تنګى په فراخئى سره بدلوى او د هريوخفګان نه پس ورته خوشحالى وركوى. سبحانه مااعظم شانه.

**قوله تعالى:- فَرَدَدْنٰهُ اِلٰٓى اُمِّهٖ**

**موسى ﷺ اعزاز او كرام سره د مور غيږې ته واپس كړې شو:-** بيافرمائى مونږ هغه د خپلې مورطرف ته بيا واپس كړو دې دپاره چه د هغې سترګې يرې يخې وى اوهغې ته دخپل بچى خفګان نه وى اودالله تعالى وعدې هم رښتيااوګنړى اودايقين هم اوكړى چه هغه به ضرور نبى اورسول كيدونكې هم دې.اوس د

---

(١) ددې معنى روايت ابن ابى شيبه :۵/۳۴۷ ،بيهقى:۹/۲۷ ، المراسيل لابى داؤد: ۳۳۳ كښې. موجوددې.

موسی ﷺ مور بی بی ښه په تسلئی سره د هغه پالنه کولو کښې مشغوله وه داسې پالنه ئې کوله لکه چه د یواوچتې درجې د پیغمبر کیدل پکاروو. اود رب حکمتونه د بې علمود نظرنه غیب وی. هغوی د رب تعالی دحکمونو غرض اود. هغې منلوسره د نیك انجام سوچ نه کوی اود ښکاره نفع نقصان پابند اوسیږی اوپه دنیاباندې مست وی هغوی سره داښه نه لګی ممکن دی چه کوم څیز هغوی خراب ګڼړی هغه ښه وی اوډیر ممکن دی چه کوم څیز هغوی ښه ګڼړی هغه خراب وی. که یوکارخراب ګڼړې نو څه معلومه ده چه قدرت په هغې کښې څه فائدې پټې کیخودې دی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَمَّا بَلَغَ | اَشُدَّهٗ | وَاسْتَوٰٓى | اٰتَيْنٰهُ | حُكْمًا وَّعِلْمًا ؕ | |
| او هرکله چې اورسیدو موسی | خوانئ خپلې ته | او برابر شو په عقل | انو ورکړو مونږ هغه ته | حکمت او علم | |

او کله چې موسی ﷺ خپلې خوانئ ته اورسیدو | او ښه تکړه شو | نومونږ ورته حکمت اوعلم ورکړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَكَذٰلِكَ | نَجْزِى | الْمُحْسِنِيْنَ ۞ | وَدَخَلَ | الْمَدِيْنَةَ | عَلٰى حِيْنِ |
| او دارنګې | بدله ورکوو مونږه | نیکانو خلقو له | اوننوتو هغه | ښار ته | په وخت |

اومونږ نیکانو خلقو ته هم دغسې بدله ورکوو | او (یوه ورځ) موسی ﷺ د خلقو د غفلت په وخت کښې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| غَفْلَةٍ | مِّنْ اَهْلِهَا | فَوَجَدَ | فِيْهَا | رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلٰنِ ۫ | هٰذَا |
| دغفلت | داهل دهغې | نو بیا ئې موندو | په هغې کښې | دوه سړی | چې جګړه ئې کوله | دایو |

ښار ته داخل شو | ..........نو هلته ئې دوه سړی په جنګ اولیدل | ..........دا(یو)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ شِيْعَتِهٖ | وَهٰذَا | مِنْ عَدُوِّهٖ ۚ | فَاسْتَغَاثَهُ | الَّذِىْ |
| دډلې دهغې نه وو | او دا بل | ددښمنانو دهغه نه وو | نو امداد اوغوښتو دهغه نه | هغه سړی |

خو د دهٔ دقوم څنی وو | او بل د ده د دښمنانوڅنی وو | نوکوم سړې چې ددهٔ دقوم وو | هغه د دښمن

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ شِيْعَتِهٖ | عَلَى الَّذِىْ | مِنْ عَدُوِّهٖ ۙ | فَوَكَزَهٗ | مُوْسٰى |
| چې دډلې دهغه نه وو | خلاف دهغه سړی | چې ددشمن دهغه نه وو | نو سوك ورکړو هغه له | موسی |

د سړی په مقابله کښې دموسی ﷺ نه مدد اوغوښتلو | نو موسی ﷺ ورته یو سوک ورکړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَضٰى عَلَيْهِ ۫ | قَالَ | هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ؕ | اِنَّهٗ | عَدُوٌّ |
| نو کار ئې تمام کړو دهغه | اووئیل موسی | دا کار دعمل دشیطان نه دې | بیشکه هغه | دشمن دې |

نوهغه مړ شو | موسی ﷺ اووئیل چې دا خو یو شیطانی کار اوشو | ..........بیشکه هغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُّضِلٌّ | مُّبِيْنٌ ۞ | قَالَ | رَبِّ | اِنِّىْ | ظَلَمْتُ |
| ګمراهه کونکې دې | ښکاره | اووئیل موسی | اے ربه زما | بیشکه زهٔ چې یم | ظلم اوکړو ما |

ښکاره بې لاره کونکې دشمن دې | موسی ﷺ اووئیل چې ائې زما ربه ! ما په خپل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| نَفْسِىْ | فَاغْفِرْ لِىْ | فَغَفَرَ | لَهٗ ؕ | اِنَّهٗ | هُوَ |
| په خان خپل | نو ښښنه اوکړه ماته | نو ښښنه اوکړه الله | هغه ته | بیشکه هغه | خاص هم هغه |

خان ظلم اوکړو | نوته راته معافی اوکړه | نو الله ورته معافی اوکړه | ......بیشکه هغه

الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶﴾ قَالَ رَبِّ بِمَآ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ

بښونکي | مهربانه دي | اووئيل موسى | اے ربه زما | په سبب دهغه انعام | چي تاکړي دي په ما باندي

بخښونکي مهربان دي | موسى ﷺ اووئيل چي ائي زما ربه ! تاچي په ماکومه مهرباني کړي ده

فَلَنْ اَكُوْنَ ظَهِيْرًا لِّلْمُجْرِمِيْنَ ﴿۱۷﴾ فَاَصْبَحَ فِي الْمَدِيْنَةِ

نو هر گز به نهٔ کیږم زهٔ | مددگار | دپاره دمجرمانو خلقو | پس صبا کړو موسى | په هغه ښار کښی |

نو زه بهٔ هیچرې د مجرمانو مددگار جوړنشم | ..................نو موسى ﷺ په ښار کښي

خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ فَاِذَا الَّذِي اسْتَنْصَرَهٗ

يريدونكي | چي خطره ئي محسوسوله | نو ناساپه | هغه سړي | چي امداد ئي غوښتي ووٚ دهغه نه |

د ويرې او انتظار په حالت کښي صبا کړو | څهٔ گوری چي پرون ترې نه کوم سړي امداد غوښتلي وو

بِالْاَمْسِ يَسْتَصْرِخُهٗ ط قَالَ لَهٗ مُوْسٰٓى اِنَّكَ لَغَوِيٌّ

پرون | ابيا ئي فرياد کووٚ هغه ته | اووئيل هغه ته | موسى | بيشکه تهٔ | خامخا بې لارې ئي |

هغه ورته نن بيا (دمدد دپاره) آوازونه کوی | موسى ﷺ ورته اووئيل چي ته خو ښکاره بې

مُّبِيْنٌ ﴿۱۸﴾ فَلَمَّآ اَنْ اَرَادَ اَنْ يَّبْطِشَ بِالَّذِيْ هُوَ عَدُوٌّ

ښکاره | پس هر کله چي | اراده اوکړه موسى | چي اونيسي | هغه سړي | چي هغه | دشمن ووٚ |

لارې سړي يئ | نو څه وخت چي موسى ﷺ هغه سړي ته لاس وراوږد کړو | کوم چي د دواړو په شريکه

لَّهُمَا لا قَالَ يٰمُوْسٰٓى اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِيْ كَمَا

ددواړو | نو اووئيل هغه اسرائيلي | اے موسى | آيا تهٔ غواړې | چي اووژني ما | الکه څنگه

دشمن وو | نو هغي (اسرائيلي) اووئيل چي ائي موسى ﷺ ! ايا ته ما هم هغسي قتل کول غواړې | الکه

قَتَلْتَ نَفْسًاۢ بِالْاَمْسِ ۖ اِنْ تُرِيْدُ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ جَبَّارًا

چي تاوژلي دي | يو سړې | پرون | نهٔ غواړې تهٔ | مگر | چي شې تهٔ | زورور

چي پرون دي يو سړي وژلي وو | ته خوبس په دې زمکه کښي زوراور کيدل غواړې

فِي الْاَرْضِ وَمَا تُرِيْدُ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْمُصْلِحِيْنَ ﴿۱۹﴾

په زمکه (دمصر) کښي | اونهٔ غواړې تهٔ | چي شې تهٔ | داصلاح کونکونه

..............اودا نه غواړې چي د روغې کونکو څخې شې

**قوله تعالى:- وَدَخَلَ الْمَدِيْنَةَ عَلٰى حِيْنِ غَفْلَةٍ مِّنْ اَهْلِهَا**

**دٚ موسى ﷺ دٚ لاس نه دٚ قبطي قتل:-** موسى ﷺ د وړوکوالی ذکرکولونه پس اوس دهغه د ځوانۍ دواقعه بيان کولي شي چه الله تعالى هغه ته حکمت اوعلم ورکړويعني نبوت ئي ورکړو(۱) نيکان هم داسي

(۱) الدرالمنثور: ۲۳۱/۵.

بدله مومي.بيادهغه واقعه ذكركولې شي كومه چه د موسى ﷺ دمصر پريخودو ذريعه جوړه شوه اود كومې نه پس چه الله ﷻ هغه ته د رحمت مخ واړولو.ده مصرپريخودو اودمدين طرف ته لاړو.هغوى يوخل ښار ته راغى ياخودماښام نه پس ياماسپښين په وخت[1]خلق په خوراك څښاك يااوده كيدوكښې مشغول دى.په لاره باندې ډېر خلق نشته څه ګورى چه دوه كسان په خپل مينځ كښې په جګړه دى يواسرائيلي دې اويوقبطي.اسرائيلي دقبطي موسى ﷺ ته شكايت اوكړواود هغه زورزياتې بيان كړو په دې باندې موسى ﷺ له غصه ورغله اويوه موكه ئې وركړه په هغې سره چه هغه هم هغه وخت مړشو. موسى ﷺ اوويريدلو وئې وئيل چه داخود شيطان كاردې شيطان دښمن اوګمراه دې اود هغه د نوروګمراه كول هم ښكاره دى. بيائې دالله تعالى نه معافي غوښتله اواستغفارئې كولو الله تعالى هم اوبښلو او ښونكې مهربان خوهغه دې.اوس ئې وئيل اې الله تعالى تاخوماله عزت بزرګى او نعمت راكړې دې زه دامخې ته ايږدم او وعده كوم چه بيا به هيڅ كله د يونافرمان په هيڅ كاركښې برابرې او امدادنه كوم.

**قوله تعالى:- قَالَ يٰمُوْسٰى اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِيْ**

**د قتل رازښكاره شو :-** د موسى ﷺ د موكې نه قبطي مړشويه دې وجه د هغوى په طبيعت كښې ويره وه ښار ته په ويره ويره راغلوچه اوګورى څه خبرې كيږى چرته راز خوښكاره شوې نه دې؟څه ګورى چه هم پرونې اسرائيلي يوبل قبطي سره په جنګ دې. د موسى ﷺ په كتوسره هغه د پرون په شان نن هم فرياد اوكړو اوزارې ئې كولې. حضرت موسى ﷺ اوفرمائيل ته ډېر شيطان سړې ئې دې اوريدو سره هغه اوويريدو.كله چه حضرت موسى ﷺ د هغه ظالم قبطي طرف ته د هغه د ظلم بندولود پاره لاس وراندې كولو نودې سړى د خپل كمينه توب او بزدلئ نه دا اوګڼړل چه ګنى هغوى هم ده ته بد اوونيل او هم دې رانيسى نود خپل ځان بچ كولود پاره ئې شور شروع كړوچه موسى ﷺ لكه څنګه چه تاپرون د يوسړى قتل كړې دې نن ما قتل كول غواړې؟پرونئ واقعه خو صرف د ده په وړاندې شوې وه څكه تراوسه پورې چاته پته نه وه لګيدلې خونن د ده په خله دې قبطي ته معلومه شوه چه داكارد موسى ﷺ دې اودې بزدل اودړيوك دې سره داهم ښكاره كړه چه ته خو په زمكه باندې سركشه اوسيدل غواړې او ستا په طبيعت كښې خو اصلاح نشته. قبطي چه داواوريده نواوتختيدو اومنډه ئې كړه د فرعون دربار ته اورسيدواوهلته ئې مخبرى اوكړه.دفرعون دزړه دخرابوالي اوس څه حدپاتې نه شواوزر ئې سپاهيانو اوزغلول چه موسى ﷺ راونيسئ او پيش ئې كړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَجَآءَ رَجُلٌ | مِّنْ اَقْصَا | الْمَدِيْنَةِ | يَسْعٰى | قَالَ | يٰمُوْسٰى |
| او راغي يو سړې | داخرسر | دهغه ښار نه | چې رامنډې ئې وهلې | اوونيل هغه | اے موسى |
| او يو سړې د ښارد بلې غاړې نه په منډه منډه راغلو \| ......وې ونيل چې ائې موسى ﷺ | | | | | |
| اِنَّ الْمَلَاَ | يَأْتَمِرُوْنَ | بِكَ | لِيَقْتُلُوْكَ | فَاخْرُجْ | اِنِّيْ |
| بيشكه سرداران | مشوره كوى | خلاف ستا | چې اووژنى تا | نو اوخه ته | بيشكه زه |
| درباريان ستا په باره كښې مشورې كوى \| چې تا اووژنى \| نو ته د(ملك نه) بهر لاړ شه \| بيشكه زه | | | | | |
| لَكَ | مِنَ النّٰصِحِيْنَ | فَخَرَجَ | مِنْهَا | خَآئِفًا | يَّتَرَقَّبُ |
| تاته | دنصيحت كونكونه يم | نو اووتو موسى | دهغه ښارنه | ايريدونكې | چې كتل به ئې هر طرفته |
| ستا خير خواه يم \| نو موسى ﷺ د هغه ځائي نه د ويرې او پريشانئ په حالت كښې اووتلو | | | | | |

[1]) الطبرى:۵۳۸/۱۹.

قَالَ رَبِّ نَجِّنِيْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢١﴾ وَلَمَّا

اووئیل موسی | اے ربه زما | نجات راکړې ماته | دقوم ظالم نه |او هر کله چې

دا ئې ووئیل چې انې زما ربه ! ما د دې ظالمانو نه خلاص کړه | ............ او څهٔ وخت چې

تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ عَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ

توجه اوکړه (روان شو) هغه|طرف | دمدین ته | نو وې وئیل |امید دې رب زما|چې اوبه ښائي ماته

موسی ﷺ د مدین طرف ته روان شو | ............نو وې وئیل | امید دې چې زما رب به راته

سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿٢٢﴾ وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ

نیغه لار | او هر کله چې | اورسیدو | اوبو (کوهی) دمدین ته | نو وې مونده |

نیغه لار اوښائی | .........او کله چې د مدین اوبو (د کوهي غاړې) ته اورسیدو | نو هلته ئې

عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ ۙ وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ

په هغې باندې| یوه ډله | دخلقو نه | چې اوبه کول ئې څاروی | اووې لیدلې | په ډډه دهغوئ نه

د خلقو یوه ډله بیاموندله چې (څاروی) خړوبوی | او د هغوئ نه ئې یوې ډډې ته ئې دوه

امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ؕ

دوه ښځې | چې رامنع کولې به ئې (ګډې خپلې) | اووئیل موسی | څهٔ دې حال (کار) ستاسو |

ښځې اولیدې چې ((خپلې ګډې ئې) منع کړې ولاړې وې | اووئیل چې موسی ﷺ تاسو څهٔ غواړئ

قَالَتَا لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ

اووئیل هغوئ دواړو | چې اوبهٔ نهٔ ورکوؤ مونږ | تر هغې پورې | چې اوباسي څاروی | دا شپانهٔ

هغوئ اووئیل چې مونږ ترهغه وخته (خپلو ګډو ته) اوبه نه ورکوو ترڅو چې ګډبانه (خپل کندکونه) اوبه ورنکړی

وَاَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ ﴿٢٣﴾ فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰىٓ

او پلار زمونږ | بوډا دې ډیر | نو اوبهٔ ئې کړل څاروی | دهغوئ دواړو | بیا | واپس لاړو

او زمونږ پلار ډیر بوډا دې انو موسی ﷺ د هغوئ دپاره (په ګډو) اوبهٔ اوڅکولې ابیا یو اړخ ته

اِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ اِنِّيْ لِمَآ اَنْزَلْتَ اِلَيَّ

سوري ته | پس وې وئیل | اے ربه زما | بیشګه زهٔ | هر هغه خیز ته | چې نازل ئې کړې تهٔ ماته

په سوري کښې کیناستو | نودعائي اوکړه چې اې زما ربه اچې څهٔ نعمت دې راولیږلو نو

مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ ﴿٢٤﴾

دخیر نه | محتاج یم |

زهٔ ورته ډیر محتاج یم

**قوله تعالى:- وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى** رجل اووئیل په عربی کښې رجل وائی پښونه. هغه
**دقوم فرعون نه یو خیرخواه تذکره:-** دې راتلونکی ته ئې رجل اووئیل په پښوسره په تیزو منډوپه یوه
چه کله اوکتل چه سپاهیان د موسی ﷺ په لټون کښې روان شو نودې په پښوسره په تیزو منډوپه یوه

نیزدې لاربانديې اووتلو اوزر نې موسی ﷺ ته خبر ورکړو چه د دې ځایٔ مشرانو ستا د قتل اراده کړې ده تاسو ښار پرېږدئ زه ستاسو خیرخواه یم زما خبره اومنئ.

**قوله تعالی:- وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلۡقَاۤءَ مَدۡيَنَ**

**د مدین سخت سفر:-** دفرعون اوفرعونیانو ارادې چه کله د دې سړي په ذریعه موسی ﷺ ته معلومې شوې نوهغوی دهغه ځایٔ یکې یوازې چپ اوپټ اووتلوتردغه وخته پورې د هغوی ژوند خودشهزادګانو په شان تیرشوې ووسفرورته ډیرسخت معلوم شوخود ویرې ترهې په وجه به نې اخوادیخوا کتل او نیغ روان وو اوداللّه ﷻ نه به نې دعاغوښتله چه یاالله ماله ددې ظالمانویعنی فرعون اوفرعونیانونه خلاصې راکړې.روایت دې چه الله ﷻ د هغوی د لارخودنې دپاره یوه فرښته راولیګله چه په اس باندې هغوی سره وه اوهغوی ته نې لاراوخودله.والله اعلم.په لږساعت کښې هغه دځنګلونواوبیابانونونه اووتلواود مدین لارې ته اورسیدلو.خوشحاله شواوونی فرمائیل چه ماته داللّه ﷻ نه امید دې چه هغه به مې هم په نیغه لار بوځې. الله تعالی د حضرت موسی ﷺ دا امید پوره کړو اود دنیااوآخرت نیغه لار ئې نه صرف ورواخودله بلکه د نورو د پاره هم د نیغې لارخودونکې جوړشو.

**قوله تعالی:-وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدۡيَنَ**

**موسی ﷺمدین ته اورسیدو:-**مدین سره نیزدې یوکوهی له راغلوچه ونی کتل نو ګډبانه اوبه په راښکلو راښکلو خپلو څاروو باندې څکی اوهلته موسی ﷺ داهم اولیدل چه دوه ښځې دی چه خپلې چیلئ نوروخلقودڅاروو سره داوبوڅکلونه منع کوی.نوحضرت موسی ﷺ ته په دې چیلو اوبه دې ښځویاندې رحم راغلوچه دوی اوبه نه شی راویستلې اود ګډبانونه هم څوك دا خیال نه کوی چه د خپلو راښکلو شوواوبونه دهغوی په چیلوهم اوڅکی.موسی ﷺ د هغوی نه تپوس اوکړو تاسوخپل څاروی د دې اوبو نه ولې منع کوئ؟ هغوی وئیل چه مونږ خو اوبه نه شو راویستلې چه کله د دوی څاروی اوبه اوڅکی او لاړ شی نودا بچ شوې پاتې اوبه به مونږ په خپلو څاروو باندې اوڅکو.

**قوله تعالی:-فَسَقَىٰ لَهُمَا**

**دلسو کسانو بوکه موسی ﷺپه یوازې راوویستله:-** زمونږ پلاردې خوهغه ډیربوډا دې. موسی ﷺ پخپله دا اوبه راښکلې او په دوی باندې اوڅکلې. عمر ﷺ فرمائی چه د دې کوهی خُله دې ګډبانو په یو لویٔ کاڼړې باندې بندکړې وه.کوم کاڼړې چه به لسوکسانو په یوځایٔ ددې نه اخوا کولوموسی ﷺ په یوازې خان هغه اخواکړواوهم یوه ډولچه ئې راویستې وه په هغې کښې الله تعالی برکت واچولو اود دې دواړو جینکوچیلئ مړې شوې. موسی ﷺ سترې ستومانه اوترې ترې د یوې اونې د سورې لاندې کیناستو. دمصر نه د مدین پورې پیدل په منډو راغلې وو په پښوکښې پولې شوې وې دخوراك ورسره هم هیڅ نه و. دونو پاڼړې اوواښه مابښه نې خوړل او خیټه نې ملاسره لګیدلې وه اودوښوشین رنګ بهر ترې ښکاریدو.دنیمې کهجورې د پاره هم هغه په دې وخت کښې محتاج وو.سره د دې چه په دغه وخت کښې د ټول مخلوق نه زیات بزرګ د الله تعالی په نیزباندې هم دې وو. صلوات الله وسلامه علیه.

**قوله تعالی:- ثُمَّ تَوَلَّىٰٓ إِلَى ٱلظِّلِّ**

**هغه ونه څنګه او د څه وه؟** ابن مسعود ﷺ فرمائی چه زه دشپې په سفرکولوسره مدین ته اورسیدم اود هغه ځایٔ دخلقو نه مې دهغه ونې باره کښې تپوس اوکړو دکومې لاندې چه داللّهﷻ کلیم دمه کړې وه. خلقو ډیوې ونې طرفته اشاره اوکړه.ما اوکتل چه هغه یوه تکه شنه ونه ده.زما څاروی ډیر اوګې وو هغه په خُله کښې پاڼړه واخستله اوترډیره ساعته پورې شوخوندوهلوخوآخرنی هغه واپس راوویستله ماد کلیم الله دپاره دعااوکړه اودهغه ځایٔ نه واپس شوم.یوبل روایت کښې دی چه هغه ددې ونې دکتود پاره تلې وودکومې نه چه اللّهﷻ موسی ﷺ سره خبرې کړې وې لکه څنګه چه به روستو راځی ان شاء الله سدی

ﷺ فرماني چه دا دکيکر ونه وه.غرض د دي وني لاندي کيناستو موسی ﷺ د الله ﷻ نه دعاوکړه اې ربه زه ستاد احسانونومحتاج يم. د عطاء ﷫ قول دې چه دې ښځې هم د موسی ﷺ دعا واوريده. (۱)

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَجَآءَتْهُ | إِحْدٰىهُمَا | تَمْشِيْ | عَلَى اسْتِحْيَآءٍ |
| پس راغله هغه ته | يوه ښخه ددواړو نه | چې تله | په حياء سره |

بيا دې دوؤ جينکو کښې يوه ورته (واپس) راغله | چې په حيا سره راروانه وه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَتْ | إِنَّ أَبِيْ | يَدْعُوْكَ | لِيَجْزِيَكَ | أَجْرَ | مَا |
| اوونيل هغې | بيشکه پلار زما | غواړي تالره | دپاره ددې چې درکړي تاته | مزدوري | دهغې |

هغې اوونيل چې زما پلار تا غواړي | ..................چې تاته زمونږ په دې کنډک باندې داوبو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَقَيْتَ | لَنَا ۭ | فَلَمَّا | جَآءَهٗ | وَقَصَّ | عَلَيْهِ |
| چې اوبهٔ کړل خاروي تا | مونږ لره | پس هر کله چې | راغلو موسی هغه ته | او بيان ئې کړه | هغه ته |

څښولو بدله درکړي | نوځه وخت چې هغه شعيب ؑ ته ورغلو | اوهغه ته ئې خپله قصه بيان

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْقَصَصَ ۙ | قَالَ | لَا تَخَفْ ۣ | نَجَوْتَ | مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ۝ |
| قيصه (خپله) | اوونيل هغه | مهٔ يريږه | خلاص شوې تهٔ | دقوم ظالم نه |

کړه | ..............نو هغه (شعيب) ورته اوونيل چې مه ويريږه | تا دظالمانو نه خلاصي بيامونده

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَتْ | إِحْدٰىهُمَا | يٰٓأَبَتِ | اسْتَأْجِرْهُ | إِنَّ خَيْرَ |
| اوونيل | يوې ښخې ددواړو نه | اے پلاره | مزدور اونيسه دهٔ لره | بيشکه غوره |

په دې جينکو کښې يوې اوونيل چې اې زما بابا جانه! | دې په مزدورۍ سره اونيسه | ځکه

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَنِ اسْتَأْجَرْتَ | الْقَوِيُّ | الْأَمِيْنُ ۝ | قَالَ |
| دهغه چاچې تهٔ ئې مزدور کوې | هغه خوك دې چې قوي وي | امانتدار وي | اوونيل پلار دهغې |

چې ښه مزدور کار هغه دې چې قوي او امانتدار وي | ..............هغه ورته اوونيل چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنِّيْٓ أُرِيْدُ | أَنْ أُنْكِحَكَ | إِحْدَى | ابْنَتَيَّ | هٰتَيْنِ |
| بيشکه زهٔ غواړم | چې په نکاح درکړم تاله | يوه | ددې دواړو لونړو نه | په دې شرط |

زهٔ دا غواړم چې په خپلو دوؤ لونړو کښې ديوې تاسره نکاح اوکړم | خو په دې شرط

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلٰٓى أَنْ تَأْجُرَنِيْ | ثَمٰنِيَ حِجَجٍ ۚ | فَإِنْ أَتْمَمْتَ | عَشْرًا |
| چې تهٔ به مزدوري کوې زما سره | اتهٔ کاله | پس که پوره کړل تا | لس کاله |

چې ته به اته کاله ما سره مزدوري کوې | اوکه چرې تا لس کاله پوره کړل

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَمِنْ عِنْدِكَ ۚ | وَمَآ أُرِيْدُ | أَنْ أَشُقَّ | عَلَيْكَ ۭ |
| نو هغه به دطرفه ستا نه وي | اونهٔ غواړم زهٔ | چې سختي اوکړم زهٔ | په تا باندې |

نودابهٔ ستا دطرفه احسان وي | او زهٔ تا په مشقت کښې د اچولو څه اراده نه لرم (چې سخت کارونه درباندې کوم)

(۱) الطبري:۱۹/۵۵۷.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| سَتَجِدُنِيٓ | إِن شَآءَ ٱللَّهُ | مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ | قَالَ | ذَٰلِكَ | |
| زر ده چې ته به بیا مومې ماله | که اوغواړي الله | دصالحانونه | اوونیل موسی | چې همدا | |
| ته به انشاء الله ما په معامله کښې ډیر ښه بیامومې \| موسی ﷺ اووئیل چې دا خبره زما | | | | | |
| بَيۡنِي | وَبَيۡنَكَۖ | أَيَّمَا ٱلۡأَجَلَيۡنِ | قَضَيۡتُ | | |
| وعده شوه په منځ زما | او په منځ ستا کښې | هره یوه | ددې دواړو نیټو | چې پوره کړه ما | |
| او ستا په مینځ کښې فیصله شوه \| په دواړو کښې هره یوه نیټه چې زه پوره کړم | | | | | |
| فَلَا عُدۡوَٰنَ | عَلَيَّۖ | وَٱللَّهُ | عَلَىٰ مَا | نَقُولُ | وَكِيلٞ |
| نوبه به وی زیاتی | په ماباندې | او الله | په هغه خبرو | چې وایو ئې مونږه | ساتونکې نګهبان دې |
| نو په ما به څه زور نه وی \| ..........او څه چې مونږ وایو الله ﷻ په هغې باندې ګواه دې | | | | | |

قوله تعالی:- فَجَآءَتۡهُ إِحۡدَىٰهُمَا تَمۡشِي عَلَى ٱسۡتِحۡيَآءٖ

**شیخ کبیراودموسی ﷺ نکاح**:-ددې دواړوجینکوپه بزوباندې چه کله موسی ﷺ اوبه اوڅکولې،نودوی خپلې بزې کورته واپس بوتلې، پلارئې اولیدل چه نن دوی دوخت نه مخکښې راغلې،نوتپوس ئې ترې اوکړوچه نن څه خبره ده؟هغوی ورته ربښتونې واقعه واوروله، شعیب ﷺ ددې دواړونه یوه هم هغه وخت اولیږله چه لاړه شه اوهغه ماته راوله،هغه موسی ﷺ ته ورغله اوځنګه چه دکورنۍ پاك لمنو ښځو دستوروې په شرم اوحیا سره په خپل څادرکښې پټه په پرده کښې روانه وه،مخ ئې هم دڅادریه پلوپټ کړې وو(١)بیادهغې هوښیارتیااوصداقت ته اوګورئ چه صرف دانې ورته اونه وئیل چه زماپلارتا غواړي،ځکه چه په دې کښې دشك دخبروګنجائش وو،صفا ورته اووئیل چه زماپلارتاته د مزودرۍ درکولوپاره اوداحسان بدله خلاصولوپاره تا رابلی.کوم احسان چه تاپه مونږ په بزوباندې اوبو څکولو سره کړې دی.کلیم الله چه اوړې ترې یك یواخې مسافراوبې خرچه وو، ته داموقعه غنیمت معلومه شوه دلته راغې هغه ئې یومشر اوکنړلو اودهغه په تپوس باندې ئې خپله ټوله قیصه پوره په پوره ورته بیان کړله،هغه ورته تسلی ورکړه اووې فرمائیل چه اوس درسره څه ویره ده؟دهغه ظالمانو دلاسه ته راخلاص شوې دلته دهغوی حکومت نشته.

**دا شیخ کبیرڅوك وو؟**:-بعضې مفسیرین وائی چه دابزرګ حضرت شعیب ﷺ وو،چه دمدین والودپاره د الله ﷻ دطرف نه پیغمبررالیږلې شوې وو،همدغه مشهورقول دې.امام حسن بصریm اونور ډیر عالمان دغـې فرمائی،دطبرانی یوحدیث کښې دی چه کله سلمه بن سعد غزیﷺدخپل قوم دطرف نه بطوراستاذې درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو نو حضور ﷺ ورته اوفرمائیل چه دشعیب ﷺ دقوم په کس اودموسی ﷺ په سخرانه دې مرحباوی(٢) چه تاته هدایت اوکړې شو،بعضې وائی چه دې د شعیب ﷺ ورارۀ وو،اوڅوك وائی چه دشعیب ﷺ دقوم یو مومن سړې وو،دبعضوقول دې چه د شعیب ﷺ زمانه خودموسی ﷺ دزمانې نه ډیره مخکښې وه،دهغوی داقول دقران کریم ددې قول نه اخذ کړې شوې دې چه(وَمَا قَوۡمُ لُوطٖ مِّنكُم بِبَعِيدٖ)(٣)دلوط ﷺ قوم ستاسونه ډیرلرې نه دې.اوداهم دقران نه ثابته ده چه دلوطیانوهلاکت دابراهیم ﷺ په زمانه کښې شوې وو،اوداهم ظاهره ده چه دحضرت ابراهیم

---

(١) ایضا١٩\٨٥٨ حاکم ٢\٤٠٧.
(٢) البزاز ١٨١٨،طبرانی ٦٣٦٤.
(٣) ١١\هود:٨٩.

اوحضرت موسی ﷺ په مینځ کښې زمانه ډیره اوږده ده،تقریبا دخلورو سووکالو ځنګه چه د بعضې مورخینوقول دې.اوبعضې خلقوددې مشکل داجواب ورکړې دې چه دحضرت شعیب ﷺ عمر ډیراوږدوو،دهغوی مقصدغالباً ددې اعتراض نه بچ کیدل دی ،الله اعلم.یوه بله خبره هم په خیال کښې ساتئ چه که دابزرګ هم حضرت شعیب ﷺ وې، نو پکاروه چه په قران کښې په دې موقعه دهغهٔ نامه راضحه اخستې شوې وې،اوالبته په بعضې حدیثونو کښې داراغلی دی چه داحضرت شعیب ﷺ وو، خوددې حدیثونوسندصحیح نه دې،ځنګه چه به مونږ ډیرزرواضحه کړو انشاءالله ﷻ.دبنی اسرائیلوپه کتابونوکښې ددهٔ نوم یثرون ونیلې شوې دې.والله اعلم.

**قوله تعالی:- قَالَتْ إِحْدَاهُمَا**

**دا هم هغه وه چې موسی ﷺ د راغوښتلو دپاره تلې وه:-** دابن مسعود ﷺ خوې فرمائی چه ثیرون د حضرت شعیب ﷺ وراره وو،دابن عباس ﷺ نه روایت دې چه دې یثربی وو،ابن جریر رح فرمائی چه دا خبره به هغه وخت ثابتیده هرکله چه ددې په باره کښې څه خبرمروی وواوداسې نه ده.ددهٔ په دوارو لونړو کښې یوې دپلارخیال دې طرف ته راګرځولو،داخیال راګرځولوواله هم هغه لوروه چه دموسی دپاره راغوښتودپاره ورغلې وه،ورته اوونیل چه تاسودې زمونږ دبزودځرولودپاره اوساته،ځکه چه کارکونکې هم هغه ښه وی چه طاقتور وی ، امانتداروی ،پلارترې تپوس اوکړو،چه تاته ځنګه پته اولږیده چه په ددهٔ کښې داداواړه صفتونه شته،لوررته جواب ورکړوچه لس طاقتوروکسانوپه یوځائې چه کوم کانړې د هغه کوهی نه لرې کولې شوهغهٔ په یواځې هغه لرې کړو،ددې نه ددهٔ دطاقت اندازه په اسانئ سره لګیدې شی.دهغهٔ دامانتدارئ اندازه ماته داسې اوشوه چه کله ماهغه تاته راوستونوددې وجې نه چه هغه دلارې نه ناواقفه ووزهٔ دهغهٔ نه وراندې شوم.هغهٔ راته اوونیل ،ته زمانه روستو شه، او کوم ځائې کښې چه لاره بدلول وی نوهغه طرف ته کانړې راغورځوه زهٔ به پوهه شم چه په دې لاره تلل پکاردی.(۱)

**دریوکسانو ډیرعقل مندئ کارکړې دې؟:-** ابن مسعود ﷺ فرمائی چه ددریوکسانوپه شان پوهه، عقلمندی معامله فهمی اودوربینی په بل چاکښې بیانه موندې شوه،دابوبکر ﷺ عقل مندی هرکله چه هغهٔ دخپل ځان نه پس دخلافت دپاره جناب حضرت عمر ﷺ خوښ کړلو.دحضرت یوسف ﷺ اخستونکې مصروالہ چاچه په یونظرحضرت یوسف ﷺ اوپیژندلواوخپلې ښځې ته اوفرمائیل چه دې په ښه شان سره ساته، او دهغه بزرګ لورچاچه دموسی ﷺ په باره کښې خپل پلارته سفارس اوکړوچه دې په کارباندې اولګوه دې اوریدوسره ددې جینئ پلارموسی ﷺ ته اوفرمائیل،که ستاخوښه وی نوزهٔ به په دې مهرباندې (۲) پدې دواړوجینکوکښې دیوې نکاح تاسره اوکړم چه اتهٔ کاله زمونږ بزې اوڅروه،ددوی دواړو نومونه صفورالیایاصفورااوشرفاچاته چه به ئې لیاهم ونیله.اصحاب ابی حنیفه m پدې باندې استدلال کړې دې چه یو کس دداقسمه بیعه اوکړی چه زه په دوو غلامانوکښې یودسلوپه بدله کښې خرڅوم او اخستونکې منظورکړی نودابیعه ثابته اوصحیح ده.والله اعلم.دې بزرګ ورته اوونیل چه اتهٔ کاله خو ضروری دی خو ددې نه پس ددوؤکالوتاته اختیار دې .که په خپلئ خوشئ سره دوه کاله زماکارنورهم اوکړې نوښه ده ګنی په تالازم نه ده.تهٔ به اووینې چه زهٔ بدسړې نه یم.تاته به تکلیف نه درکوم.

**قوله تعالی:- عَلَىٰ أَن تَأْجُرَنِي ثَمَانِيَ حِجَجٍ ۖ فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا**

**دې ایت مبارک نه دعلامه اوزاعی استدلال:-** امام اوزاعی ددې نه استدلال کړې دې اوفرمائیلې ئې دی چه کهٔ څوک اووائی چه فلانی څیزپه نغدوباندې په لس اوپه قرض باندې په شلوخرڅوم نوبیع صحیح ده.اوخریدارته اختیاردې چه په لسونغدونې اخلی یاپه شلوقرض اخلی،هغوی ددې حدیث هم دغه

(۱) الطبری:۱۹\۵٦۲، حاکم:۲\٤۰۷.
(۲) حاکم:۲\۳٤۵.

مطلب اخلی په کوم کښې چه دی چه کوم کس په دوٌوبیعوکښې یوه بیعه اوکړی دهغهٔ دپاره دکمې والا بیعه بیعه دد ګنی سود(۱) خودامذهب غورطلب دې دکوم ددتفصیل چه داځائې نه دی .والله اعلم.
اصحاب امام احمد رح ددې ایت نه استدلال کړې دې اوفرمائیلی ئې دی چه په خوراك څښاك اوجامو باندې په مزدورئ اوکارروزګارترې باندې لړول صحیح دی.ددې په دلیل کښې دابن ماجه یوحدیث هم دې چه په دې خبره باندې دې چه مزدورمقررول په هغه مزدورئ باندې چه هغه په په مړه خیټه روټئ خوری په دې حدیث کښې راغلی دی.چه رسول اللهﷺدسوره طس تلاوت اوفرمائیلوکله چه دحضرت موسیؑ ذکرپورې راورسیدونووې فرمائیل چه حضرت موسیؑ خپله خیټه مړه ساتلودپاره اوخپل شرم ګاه بچ کولودپاره اته یالس کاله پورې خپل ځان نوکراولګولو(۲) ددې حدیث یوبل راوی مسلمه بن علی الخشنی دې چه ضعیف دې.داحدیث په بل سندسره هم مروی دی خوهغه سندهم دنظرنه خالی نه دې.کلیم الله دبزرګ شرط قبول کړلواووې فرمائیل چه په مونږ په تاکښې دافیصله اوشوه ماته به اختیاروی چه خواه که لس کاله پوره کوم یاداتوکالونه پس پریږدم. د اتوکالونه پس به ستاپه مابانډې هیڅ دمزدروئ حق لازمی نه وی.مونږ الله تعالی په خپله دې معامله باندې ګواه جوړو،اودهغهٔ کار سازی کافی ده.نوګوالس کاله پوره کول مباح دی خوهغه زیاتی څیزدې ضروری نه دې.ضروراتهٔ کاله دی.څنګه چه دمنی داخری دوٌوورځوپه باره کښې دالله تعالی حکم دې اوڅنګه چه په حدیث کښې دی، حضوراکرمﷺحمزه بن عمرواسلمیؓته فرمائیلې ووچاچه به په کثرت سره روژې نیولې،چه کهٔ په سفر کښې روژې نیسې نوتاته اختیاردې ګنی مه نیسه،نوهم تاته اختیاردې.باوجوددې چه په دویم دلیل سره نیول افضل دی.(۳)

**موسیؑ لس کاله پوره کړې وو ددې دلائل**:-چنانچه ددې دلیل هم راغلې دې چه موسیؑ لس کاله پوره کړې وو،په صحیح بخاری کښې دی چه دسعیدبن جبیرؓنه یویهودی سوال اوکړو چه موسیؑ اته کاله پوره کړې وویالس؟نوهغوی ورته اوفرمائیل ماته پته نشته.بیادعربودیرلوې عالم حضرت ابن عباسؓته ورغلل اودهغهٔ نه ئې هم دغه سوال اوکړو،نوهغوی ورته اوفرمائیل چه په دې دوارو مدو کښې کومه موده دیره پاکه وه،هم هغه هغوی پوره کړه،یعنی لس کاله،دالله پیغمبرچه څه وائی هغه پوره کوی(۴)حدیث فتون کښې دی چه سوال کونکې نصرانی وو،خوپه بخاری کښې چه څه دی هم هغه اولې دې.والله اعلم.په ابن جریرکښې دی چه رسول اللهﷺدحضرت جبرائیل نه سوال اوکړوچه حضرت موسیؑ کومه موده پوره کړې وه،نوجواب ورته ملاوشوچه په دې دواړوکښې کوم یوکامل اومکمل موده وه(۵)په یومرسل حدیث کښې دی چه دحضوراکرمﷺنه چاداتپوس اوکړونوحضورﷺدحضرت جبرائیلؑنه تپوس اوکړو،جبرائیلؑ دبلې فرښتې اوتردې پورې چه فرښتې دالله نه تپوس اوکړو. الله تعالی جواب ورکړوچه په دواړوکښې پاك اوپوره موده یعنی لس کاله.په یوحدیث کښې دی چه د حضرت ابوذرؓپه سوال باندې حضور اکرمﷺ دلسوکالودمودې پوره نوم اخستوسره داهم اوفرمائیل چه که ستانه تپوس اوشی چه دکومې جینئ سره حضرت موسیؑنکاح کړې وه نوجواب ورکړه چه په دواړوکښې کومه یوه کشره وه(۶) اوپه روایت کښې دی حضور اکرمﷺ دیره موده پوره اوښودل.

---

۱) ابی داوٗد کتاب البیوع باب فی من باع بیعتین فی بیعه وسنده حسن ابن حبان:۳\٤۳٤، بیهقی:۳\۳٤۳، حاکم:۲\٤۵.
۲) ابن ماجه کتاب الرهون باب اجارة الاجیر علی طعام بطنه:۲٤٤٤.
۳) صحیح بخاری کتاب الصوم، باب الصوم فی السفروالافطار:۱۹٤۳، صحیح مسلم:۱۱۲۱، ابی داوٗد:۲٤۰۲، ترمذی:۷۱۱
٤) صحیح بخاری کتاب الشهادت ع ۲٦۸.
۵) حاکم:۲/٤۰۷-٤۰۸،مسندابی یعلی:۲۳۰۸، مسندحمیدی:۵۳٦ وسنده حسن.
٦) البزار:۲۲٤٤

**دموسى ﵇ دخپل سخر نه رخصتى او بزې اخستل:** بيانې اوفرمائيل چه حضرت موسى ﵇ د حضرت شعيب ﵇ نه رخصت واخستواوروان شونو خپلې ښځې ته نې اوفرمائيل چه دخپل پلارنه څوبزې واخله چه په هغې زمونږ ګزاره اوشى.هغې دخپل پلارنه سوال اوكړونوهغهٔ ورسره وعده اوكړه چه دې كال هرڅومره برګې بزې وى ټولې ستادى.حضرت موسى ﵇ دبزوپه خيټوخپله امساراكارله نودهرې يوې دوه دوه درې درې بچى اوشو،اوټول په ټوله دبرګ نسل واله،چه اوس هم په لټولوموندې شى.په دويم روايت كښې دى چه دحضرت شعيب ﵇ ټولې بزې ښائسته دتوررنګ وې،څومره بچى چه په دغه كال اوشوټول بې عيبه وو،اوډكوډكو غولانځوواله اوډيرپۍ وركونكى وو.

ددې ټولوروايتونوانحصارپه عبدالله بن لهيعه باندې دې،چه دښهٔ حافظې واله نه دې اوويره ده چه دا روايتونه مرفوع نه وى.چنانچه په يوبل سندسره دادانس بن مالك ﵁ نه موفوعا مروى دى اوهغه كښې داهم دى چه دټولو بزوپه دغه كال برګ بچى راوړل اوديوې بزې نه علاوه نورټول موسى ﵇ بوتلې.

فَلَمَّا قَضٰى مُوْسَى الْاَجَلَ وَسَارَ بِاَهْلِهٖٓ اٰنَسَ
پس هر كله چى | پوره كړه | موسى | نيته | او روان شو | دټبر خپل سره | نووې ليدو |
نوڅه وخت چې موسى ﵇ نيته پوره كړه | او د خپل كوروالا سره (مصرته واپس) روان شو

مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ نَارًا ۚ قَالَ لِاَهْلِهِ امْكُثُوْٓا اِنِّيْٓ
دطرفه د طور نه | وور | اووئيل موسى | كور والو خپلو ته | چى ايسار شئ دلته | بيشكه ما
نودطور(نومې غر) طرف نه ئې اور اوليدو | خپل كور والا ته ئې اووئيل چې تاسودلته ايسار شئ اما

اٰنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّيْٓ اٰتِيْكُمْ مِّنْهَا بِخَبَرٍ اَوْ جَذْوَةٍ
اوليدو | وور | شايد چى | راوړم تاسو ته | دهغه ځائې نه | څه خبر | يا سكروټه
اور ليدلې دې | كيدې شى چې تاسو دپاره د هغې نه څه خبر راوړم | يا د اور يوه شعله چې

مِّنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُوْنَ ﴿٢٩﴾ فَلَمَّآ اَتٰهَا
دهغه وور نه | دپاره ددې چى تاسو | ورته تاوده شئ | پس هر كله چى | راغې موسى هغې وور ته
تاسو ورته ځانونه توده كړئ | ............ څه وخت چې موسى ﵇ اور ته نژدې اورسيدو

نُوْدِيَ مِنْ شَاطِئِ الْوَادِ الْاَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ
آواز اوشو | دطرفه دميدان ښى نه | په ځائې مبارك كښى | دونې نه |
نو د هغې ميدان د ښى طرفنه په هغه مبارك ځائې كښې ديوې ونې نه ورته آواز اوشو

اَنْ يّٰمُوْسٰٓى اِنِّيْٓ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٣٠﴾ لا وَاَنْ اَلْقِ
چى اے موسى | بيشكه زهٔ چى يم زهٔ الله يم | رب دمخلوقاتو | او حكم اوشو چى اوغورزوه |
چې ائې موسى ،بيشكه زه هغه الله ﷻ يم چې د ټول مخلوق پروردګار يم | او خپله

عَصَاكَ ۚ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ
همسا خپله | پس هر كله چى | اوليده موسى هغه | چى خوزيږى | لكه چى هغه | نرې مار دې |
همسا اوغورزوه | نو څه وخت چې هغه اوليدل چې همسا لكه دمار غوندې حركت كوى

وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ يُعَقِّبْ ؕ يٰمُوْسٰٓى اَقْبِلْ

نو اوګرزېدو هغه | شاګونکې | او په شاتې اونه کتل | حکم اوشو اے موسی | رامخکښې شه |

نو شا طرف ته ئې منډه کړه | او په روستو ئې اونه کتل | (مونږ اووئیل) چې ائې موسی (راوړاندې) شه

وَلَا تَخَفْ ؕ اِنَّكَ مِنَ الْاٰمِنِيْنَ ۝ اُسْلُكْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ

او مه یرېږه | بیشکه ته | دامان موندونکونه ئې | ننباسه | لاس خپل | په ګریوان خپل کښې |

او ویرېږه مه | ځکه چې ته په امن کښې یې | ........اوخپل لاس ګریوان ته ورداخل کړه

تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ ؗ وَّاضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ

رااوبه وزي | سپین ځلیدونکې | بې دعیب (تکلیف) نه | او جوخت کړه | ځان ته | لاس خپل |

نوبغیر د څه عیب نه به ځلنده سپین راوځي | ..............او دویرې (دلرې کولو) دپاره

مِنَ الرَّهْبِ فَذٰنِكَ بُرْهَانٰنِ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰى فِرْعَوْنَ

دیرې نه دبچکیدو دپاره | پس دا دواړه | )نبني دلیلونه دی | دطرفه درب ستا نه | فرعون ته

خپل لاس بیا خپل ځان سره یو ځائې کړه (نو اولني حالت ته به واپس شي) دا ستا د رب د طرفنه فرعون

وَمَلَا۟ئِهٖ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ۝

او درباریانو دهغه ته | بیشکه چې هغوئ | دی | قوم (خلق) فاسقان (نافرمان) |

او د هغه سردارانو دپاره دوه نخښې دی | یقینا هغوئ ډیر نافرمانه خلق دی |

**قوله تعالى:- فَلَمَّا قَضٰى مُوْسَى الْاَجَلَ**

**موسیؑ سره دخپلې ښځې مصرطرف ته واپسی:-** مخکښې دابیان تیرشوچه موسیؑ لس کاله پوره کړې وو. دقران ددې لفظ(الاجل) نه هم دې طرف ته اشاره ده، والله اعلم. بلکه دمجاهدؒ خوقول دې چه لس کاله دااولس کاله نورنې هم تیرکړل. په دې قول کښې دې یواځې دې. والله اعلم. اوس دحضرت موسیؑ خیال اوشوق پیداشوچه چپ په چپه وطن ته لاړشم. اوخپلوخپلوانوسره ملاوشم. نوسره د خپلې ښځې اوبزودهغې ځانې نه روان شو، دشپې باران شروع شو، اوېخې هواګانې په چلیدو شوې، او سخته تیارا شوه، اوس که ئې هرڅومره ډیوه بلوله خورنږاکیده به نه، ډیرزیات حیرانه شوپه دې کښې ئې اولیدل چه څه لرې لرې اوربل دې. نوخپلې ښځې ته ئې اوفرمائیل چه ته دلته ویساره شه، هلته څه رڼرا ښکاری زه هلته ورځم که څوك هلته وونودهغه نه به دلارې معلومات هم اوکړم ځکه چه مونږ لاره ورکه شوې ده یابه زه دهغه ځانې لرشان اورراوړم چه په هغې سره ته ګرمه شې اودېخنې څه علاج اوشی. کله چه موسیؑ هلته وراورسیدونودمیدان دښی طرف ته دقبلې واله غرنه اوازنې واورېده، ځنګه چه دقران په بل ایت کښې دی. وَمَاكُنْتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ)ددې نه معلومیږی چه موسیؑ داوردراوړلو په اراده دقبلې طرف ته تلې وو، اودقبلې طرف واله غرددهٔ ښی طرف ته وو. اوپه یوبالکل تازه اوشنه اونه کښې اوربه نظرراتلو. چه دغرهٔ په لمن کښې میدان ته متصل وه، دې چه هلته لاړواوهغه حالت ئې اولیدو حیران پاتې شو، چه دیوې شنې اونې نه داورشغلې په راوتو په نظر راځی. خواوریه څه څیزکښې بل په نظرنه راځی. هم دغه وخت دالله تعالی دطرف نه اوازراغې، عبداللهؓ فرمانی چه ماهغه اونه د کومې نه چه حضرت موسیؑ ته اوازشوې وولیدلې ده، هغه یوه سرسبزاوتازه اونه ده چه پرقیرېږی. بعضې وانی چه دادعلیق اونه وه، بعضې وانی چه دعوسج اونه وه، اوددهٔ لرګې هم ددې اونې وو.

قوله تعالی:- اِنِّیۡۤ اَنَا اللّٰہُ رَبُّ الۡعٰلَمِیۡنَ
**د اوور نه د الله ﷻ د موسی ﷺ سره کلام او دوه معجزې ورکول:-** کلیم الله واوریدل چه اوازراخی،چه ای موسی ﷺ زۀ رب اللعالمین یم،چه داوخت تاسره خبرې کوم.زۀ چه څه اوغواړم کولې شم.زمانه سواځوك دعبادت لائق نشته،اونه زماسواځوك رب شته،زۀ ددې پاك یم چه څوك زماپه شان وی،په مخلوق کښې هیڅوك زماشریك نشته،زۀ یکتا ،بې مثله اووحده لاشریك یم،زماپه ذات،زماپه صفاتواوزماپه کارونواوزماپه اقوالو کښې څوك زماسره شریك اوملګرې نشته،زۀ دهرقسمه پاك اونقصان نه لرې یم، هم په دې اوازکښې ورته حکم اوشوچه خپل لرګې په زمکه باندې اوغورځوه،اوزماقدرت پخپلو سترګو اووینه،په بل ایت کښې دی چه اول ئې ترې تپوس اوکړوچه ستاپه ښی لاس کښې څه دی؟ موسی ﷺ ورته جواب ورکړوچه دازمالرګې دې چه دې ته زۀ ډډه وهم اودې سره زۀ دخپلوبزودپاره پاڼړې راځندم. اونوردیرکارونه هم زماددې سره کیږی.اوس ئې ورته خبرورکړواوپه هغۀ ئې هغه لرګې په زمکه اوغور خولو،هغۀ په زمکه پریوتوسره یوه لویه اژدهاجوړه شوه اواخوادیخوا پرشیده،داددې خبرې دلیل ووچه وتیونکې واقعی الله تعالی دې.چه قادرمطلق دې،هغه چه څه څیزته څه اوفرمانی هغه لرې کیدې نه شی.دسوره طه په تفسیرکښې هم ددې پوره بیان تیرشوې دې.دغه ویرونکی مار باوجود ددې چه ډیرزیات پیرووڵکه دغشی په شان اخوادیخواتلوراتلو،خوله به ئی کهلاوکړه نو معلومیده به چه اوس به مې تیرکړی.په کوم ځائې چه به تیریدوکانړې به مات شو،چه دائې اولیدونو حضرت موسی ﷺ اوویریدو ،اودویرې دلاسه هلته تینګ نه شو،په اړولې پښواوتختیدواوشاته ئې هم اونه کتل.هم هلته ورته دالله تعالی دطرف نه اوازاوشوچه ای موسی دیخواراشه،مه ویریږه،ته زماپه امن کښې ئې،اوس دحضرت موسی ﷺ زړۀ په قلارشو،ښه په اطمینان سره اوبې ویرې هم هلته واپس راغې اوپه ادب سره اودریدو ،دامعجزه ورکولونه پس ئې ورته بله معجزه داورکړه چه موسی ﷺ به خپل لاس په ګریوان کښې ورکړواورابهربه ئې کړو ،نولکه دسپوږمۍ په شان ړڼیدو،اوښائسته به ښکاریدۀ، داسې نه چه لکه دکوړه دداغ په شان سپین شی داهم دالله تعالی په حکم باندې هلته اوکړل، خپل لاس ئې دسپوږمۍ په شان منوراولیدو ،بیائې ورته حکم ورکړوچاتاته ددې مارنه څه ویره رعب معلومیږی نو خپل لاسونه خپل بدن پورې اولګوه نوویره به دې ختمه شی.اوداهم هلته راغلل چه کوم کس دویرې په وخت کښې خپل لاس دالله تعالی ددې فرمان مطابق په خپل زړۀ باندې کیږدی انشاءالله تعالی دهغۀ ویره به ختمه شی.

حضرت مجاهد رح فرمانی چه په شروع دحضرت موسی ﷺ په زړه کښې دفرعون نه ډیره ویره وه،بیابه چه کله دوی هغه اولیدونودادعابه ئې لوستله،(اللهم انی ادرابك فی نحره واعوذبك من شره.) ای الله زۀ تالره ددۀ په مقابله کښې کوم،اوددۀ دبدئ نه ستاپه پناه کښې راځم،الله تعالی ددۀ دزړۀ نه ویره اورعب لرې کړو ،اودفرعون په زړۀ کښې ئې واچولو ،بیاخودهغۀ داحال شوې ووچه حضرت موسی ﷺ به ئې اولیدو نو دویره نه به ترې متیازې لاړې.دادواړه معجزې یعنی دعصائې موسی اویدبیضاء ورکولوسره ورته الله ﷻ اوفرمائیل چه اوس دفرعون اوفرعونیانوطرف ته رسالت واخله لاړشه اوددلیل په طور ورته دا معجزه پیش کړه،اودهغوی فاسقانوته دالله تعالی لاره اوښایه.

| قَالَ رَبِّ | اِنِّیۡ | قَتَلۡتُ | مِنۡهُمۡ | نَفۡسًا | فَاَخَافُ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووئیل موسی اے ربه زما | بیشکه زۀ چې یم | وژلې دې ما | دهغوئ نه | یو کس | پس زۀ یریږم |
| موسی ﷺ اووئیل ائې زما ربه ! ما د هغوئ نه یو سړې وژولې وو | | ............زه د دې نه ویریږم | | | |

اَنۡ يَّقۡتُلُوۡنِ۝ وَاَخِىۡ هٰرُوۡنُ هُوَاَفۡصَحُ مِنِّىۡ لِسَانًا

چي قتل به کړي ما لره | او رور زما هارون | هغه زيات فصيح دي | زمانه | په لحاظ دژبي سره |

چي ما به قتل کړي | اوزما د رور هارون ﷺ ژبه زما نه زياته روانه چليږي | په دي وجه ته هغه

فَاَرۡسِلۡهُ مَعِىَ رِدۡاً يُّصَدِّقُنِىۡۤ اِنِّىۡۤ اَخَافُ

پس اوليږه هغه | زما سره | مددګار | چي تصديق کوي زما | بيشکه زهٔ | يريږم

ماسره زما مددګار جوړ کړه | چي هغه زما تصديق اوکړي | ماسره داويره ده چي هغوئ به

اَنۡ يُّكَذِّبُوۡنِ۝ قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِاَخِيۡكَ

چي هغوئ به دروغ اوګنړي ما لره | اوونيل الله | محکم به کړو مونږه | مټي (لاس) ستا | په رور ستا سره

مادروغژن اوګنړي | الله ﷻ اوفرمائيل چي مونږ به ستا د رور په ذريعه ستا متي مضبوطي کړو

وَنَجۡعَلُ لَكُمَا سُلۡطٰنًا فَلَا يَصِلُوۡنَ اِلَيۡكُمَا ۚ

او دريه کړو مونږ | تاسو لره | طاقت | پس نهٔ به شي رسولي | تاسو ته (څه نقصان) |

اوتاسو دواړو ته به غلبه درکړو | .............نوهغوئ به درته په نقصان سره نشي دررسيدي

بِاٰيٰتِنَا ۚ اَنۡتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الۡغٰلِبُوۡنَ۝

په سبب دايتونو زمونږ | تاسو دواړو | او هغه څوك | چي پيروي ئي او کړه ستاسو | به غالب وي |

زمونږ د نخښنو په وجه به تاسو دواړه اوچي چا ستاسود دواړو تابعداري اوکړه غالب راځي |

قوله تعالیٰ:- قَالَ رَبِّ اِنِّىۡ قَتَلۡتُ مِنۡهُمۡ نَفۡسًا

**دموسیٰ ؑ نبوت اوبعثت اوډ خپل رور ډ پاره ډ مقام نبوت دعا:-** داتيرشوچه موسیٰ ؑ دفرعون د ويرې نه د هغهٔ ښارنه تختيدلې وو،کله چه الله ﷻ ورته دهغه ځائې اوهغوى ته دنبى په طور دتلو دپاره اوفرمائيل نودوى ته هغه هرڅه رايادشو،اوعرض ئې اوکړوچه اې الله زمادلاسه دهغهٔ ديوکس ساه وتلې وه نوهسې نه دبدلې په نامه هغه زماپه مرګ پسې اونه لګى.دحضرت موسیٰ ؑ دوړوکوالى په زمانه کښې چه کله ددوى ؑ په وړاندې دتجربې په طوريوه سکروټه اويوه کهجوره يايوه ملغلره کيښودې شوې وه نودوى سکروټه رانيولې وه،اوپه خوله کښې ئې اچولې وه.ددې دوجې نه دهغهٔ په ژبه کښې نقص پاتې شوې وو، اوهم ددې وجې نه دهٔ دخپلې ژبې دپاره دالله تعالى نه دعاغوښتلې وه چه زمادژبې لړونه کهولاو کړه.چه خلق زماپه خبره پوهه شى. اوزماروړهارون زماوزيرجوړکړه،دې سره زمامټې مضبوطې کړه او هغه زماپه کارکښې شريك کړه،چه دنبوت اورسالت فريضه اداشى.اوستابندګانوته ستادلونيوالې دعوت ورکړې شو،دلته هم ددهٔ نه دادعانقل ده،چه دوى ؑ اوفرمائيل چه زماروړهارون زماسره خپل رسول جوړکړه چه هغه زماملګرې اووزيرشى.هغه زماپه خبرو د خلقو باورراولى چه زمامټې مضبوطې وى اوزمازړهٔ ډاډه وى.اوداخبره هم ده چه دوه اوازونه ديواوازپه نسبت زيات مضبوط اوداثرنه ډك وى.که زهٔ يواځې وم نوويره ده چه چرته هغوى زماخبره ردنه کړى.اوکه هارون ؑ راسره وونوزماپه خبرو به خلق پوهوى،جناب بارى ارحم الراحمين ورته جواب ورکړوچه سوال منظوردې اومونږ به ستادروړپه وجه تاته مدددرکړو،اوهغه به هم ستاسره نبى جوړکړو.

ځنګه چه په بل ايت کښې دى(قداوتيت سؤلك ياموسى) اې موسی استاسوال پوره کړې شو،په بل ايت کښې دى چه مونږپه خپل رحمت هغه اودهغهٔ رورهارون نبى جوړکړو.لکه دمشرانووينا ده چه هيڅ يوروړپه

خپل روروباندې هغه احسان اونه کړوکوم چه ﷺموسیﷺپه خپل رورهارونﷺباندې کړې وو،الله ﷻ ته نې دعااوکړه اوهغه نې نبي جوړکړو،دادموسیﷺدلونې بزرگې دليل دې.چه الله ﷻ ددهٔ داسې دعاهم ردنه کړه.واقعې دې داللهﷻ په نزدديرې اوچتې مرتبې واله وو.بيافرمائي چه مونږ به تاسو ته زبردست دليلونه اوکامل ثبونه درکړوفرعونيان تاسوته هيڅ تکليف نه شي درکولې،ځکه چه تهٔ زماپيغام زما بندگانو ته رسولوواله نې.داسې زهٔ دخپلودشمنانونه محفوظ ساتم.ددوی مددگاراو حمايتي زهٔ په خپله جوړ شم.انجام کارداچه ته اوستامنونکي به غالبه راځي ځنگه چه فرمان دې،الله تعالی ليکلی دی چه زهٔ اوزمارسولان به غالب راځي.اوالله قوت والا تعالی عزت والا دې.

بل ايت کښې دی ﴿إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا﴾الخ...مونږ دخپلورسولانواوايمان والوددنياپه ژوندکښې هم مددکوو الخ. دابن جريرmپه نزدددې ايت معنی داده چه زمونږپه ددرکړې غلبې په وجه به فرعونيان تاسوته تکليف دراونه رسوی.اوزمونږ ددرکړې شوې ايتونوپه وجه به غلبه هم تاته حاصله وی.خومخکښې چه کوم مطلب بيان شودهغې نه هم داثابته ده نوددې څه حاجت نشته.والله اعلم.

فَلَمَّا جَآءَهُم مُّوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَا بَيِّنَٰتٍ قَالُوا۟

پس هر کله چی | ورغې هغوئ ته | موسی | دښبو زمونږ سره | چی څرګندې دی | نو اووئيل هغوئ

نوهرکله چې موسیﷺ هغوئ ته زمونږ ښکاره دليلونو سره لاړل | نو هغوئ اووئيل

مَا هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى وَمَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا

نهٔ دی دا | مګر | جادو دې | دخانه جوړ کړې شوې | اونه دی اوريدلي مونږه | دا خبري

چې دا خودځانه جوړشوې جادو دې | او مونږ داسې خبرې چرته د پلار نيکه

فِىٓ ءَابَآئِنَا ٱلْأَوَّلِينَ ۝ وَقَالَ مُوسَىٰ رَبِّىٓ أَعْلَمُ بِمَن جَآءَ

په پلارانو زمونږ | ړومبنو کښی | او اووئيل | موسی عليه السلام | رب زما | ښه خبر دې | دحال دهغه چانه

په وختونو کښې هم نه وې اوريدلې | اوموسیﷺ اووئيل چې زمارب هغه څوک ډير ښه پيژنی

بِٱلْهُدَىٰ مِنْ عِندِهِۦ وَمَن تَكُونُ لَهُۥ

چی راوړې دې هدايت | دطرفه دهغه نه | او هغه څوک ښهٔ پيژني | چی وی به هغه لره |

چاچې د هغه (الله) د طرفنه هدايت (ښيغه لاره) راوړې دې | اوهغه څوک هم ښه پيژني چې د هغه دپاره د

عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ ۗ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝

ښهٔ انجام ددنيا | بيشکه | خلاصي نهٔ مومي | ظالمان |

اخرت ښکلې انجام دې | بيشکه ظالمان چرې کاميابيدې نشي |

قوله تعالی:- قَالُوا۟ مَا هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى

دالله تعالی په وحدانيت باندې دقوم حيرانتيا:-حضرت موسیﷺپه خلعت نبوت اوکلام باري تعالی سره سرفرازدالله تعالی په حکم باندې مصرته راورسيدو،اوفرعون اودفرعون قوم ته دالله تعالی دوحدت او د خپل رسالت نصيحت کولوسره سره چه الله تعالی ورته کومې معجزې ورکړې وې هغوې ته اوښودلې دتولوسره دفرعون پوره يقين راغې چه بې شکه موسیﷺدالله تعالی پيغمبر دې. خو د مودو غرور او پخوانی کفردسراوچتولونه بغيرپاتې نه شواوژبودزړهٔ خلاف وئيل شروع کړل،چه داخوصرف مصنوعې جادودې.اوس دخپلې دبدبې اوقوت اوطاقت په وجه دحق په مقابله کښې ښه ټينګ اودريدل.اودالله

تعالى دنبيانو مقابله كولوته اماده شو. اووې ونيل چه مونږ كله هم اوريدلې نه دى چه الله تعالى يو دې. اومونږ څه زمونږ دپلارنيكه غوږونه هم ددې خبرې سره اشنانه وو، مونږ پلوسره د خپلولو يو او ورود ډيرېتانو عبادت كولو دادنوې خبروسره دكوم خوانه راغې، كليم الله موسى ﷺ ورته جواب وركړو چه ما او تاسوالله تعالى ښه پيژنى. او هم هغه به زمونږاوستاسوپه مينځ كښې فيصله اوكړى. چه په مونږ كښې په نيغه لاره څوك دى؟ اوڅوك نيك انجامه دى؟ ددې علم هم الله تعالى ته دې چه هغه به فيصله اوكړى اوتاسوبه ډيرزر اووينئ، چه دالله مدددچاسره كيږى؟ ظالم يعنى مشرك كله هم ښه انجام واله او خوشحاله نه وى اوهغه دخلاصى نه محروم دى.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | وَقَالَ | فِرْعَوْنُ |
| | | | | | او اووئيل | فرعون |
| | | | | | ..........او فرعون اووئيل | |
| يٰۤاَيُّهَا الْمَلَاُ | مَا عَلِمْتُ | لَكُمْ | مِّنْ اِلٰهٍ | غَيْرِيْ ۚ | فَاَوْقِدْ | |
| اے درباريانو | نۀ دې معلوم ماته | ستاسو دپاره | يو خدائې | غير زمانه | پس بل كړه وور | |
| چې ائې درباريانو ؛ ماته ستاسو دپاره د خپل خان نه سوا بل خدائې نه دې معلوم | نو ائې هامانه زما دپاره | | | | | |
| لِيْ | يٰهَامٰنُ | عَلَى الطِّيْنِ | فَاجْعَلْ | لِّيْ | صَرْحًا | لَّعَلِّيْۤ |
| زما دپاره | اے هامانه | په ختـه باندې | او جوړ كړه | مالره | مانړئ دنگه | شايد چې زۀ |
| په ختۀ باندې اور اولگوه (چې پخه شى) اويوه مانړئ راته جوړه كړه | كيدې شى | | | | | |
| اَطَّلِعُ | اِلٰۤى اِلٰهِ مُوْسٰى ۙ | وَاِنِّيْ | لَاَظُنُّهٗ | مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۝ | | |
| اوخيژم | خدائې دموسى ته | او بيشكه زۀ | خامخا گمان كوم په دۀ | ددروغژنانونه | | |
| چې زه په هغې دموسى ﷺ خدائې اوليدې شم | ...............اوزه خودې (موسى) دروغژن گنړم | | | | | |
| وَاسْتَكْبَرَ | هُوَ | وَجُنُوْدُهٗ | فِي الْاَرْضِ | بِغَيْرِ الْحَقِّ | وَظَنُّوْۤا | |
| او تكبر اوكړو | هغه | او لښكرو دهغه | په زمكه كښې | په ناحقه | او خيال اوكړو هغوئ | |
| او فرعون او د هغه لښكرو په ناحقه په زمكه كښې تكبر اوكړو | اودائې خيال وو | | | | | |
| اَنَّهُمْ | اِلَيْنَا | لَا يُرْجَعُوْنَ ۝ | فَاَخَذْنٰهُ | وَجُنُوْدَهٗ | | |
| چې بيشكه هغوئ به | مونږ ته | نۀ واپس كړې كيږى | پس رااونيوۀ مونږ هغه | او لښكرې دهغه | | |
| چې چرې به هم مونږ ته پش نشى | ...............نومونږ هغه اودهغه لښكرې اونيول | | | | | |
| فَنَبَذْنٰهُمْ | فِي الْيَمِّ ۚ | فَانْظُرْ | كَيْفَ كَانَ | عَاقِبَةُ | | |
| پس اوغورزول مونږ هغوئ | په درياب كښې | پس اوگوره | څه رنگې وۀ | اخرى انجام | | |
| اوبيا مو په درياب كښې اوغورزول | ............ نو ته گوره چې ددغې ظالمانو اخره | | | | | |
| الظّٰلِمِيْنَ ۝ | وَجَعَلْنٰهُمْ | اَىِٕمَّةً | يَّدْعُوْنَ | اِلَى النَّارِ ۚ | | |
| دظالمانو | او جوړ كړل مونږه دهغوئ | مشران | چې رابلې خلق | وور ته | | |
| خاتمه څنگه شوه | اومونږ هغوئ پيشوايان جوړ كړى وو چې هم د دوزخ طرفته به ئې خلق رابلل | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ | لَا يُنْصَرُوْنَ۝ | وَاَتْبَعْنٰهُمْ |
| او په ورځ دقيامت به | امداد ونکړې شي دهغوئ سره | او روستو اولګوؤ مونږه په هغوئ پسې |
| اود قيامت په ورځ به هم د هغوئ څۀ مددنشي کولې | اوپه دې دنيا کښې مو ورپسې | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا | لَعْنَةً | وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ | هُمْ | مِّنَ الْمَقْبُوْحِيْنَ۝ |
| په دې دنيا کښې | لعنت | او په ورځ دقيامت به | وی هغوئ | دقبيح کړې شوؤ نه (دبدحالونه) |
| لعنت اولګولو | ........... اودقيامت په ورځ به هم د هغوئ حال ډېر خراب وی | | | |

**قوله تعالى:- وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰاَيُّهَا الْمَلَاُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ**

**دفرعون دحدنه زياته سرکشی:** دفرعون دسرکشۍ اودهغۀ دخدايۍ ددعوی ذکرکيږی.چه هغۀ دخپل قوم نه بې عقله جوړکړواوپه هغوی ئې خپله دعوی اومنله.دۀ هغه کم ذاته راجمع کړل اواعلان ئې اوکړو چه ستاسو رب زۀ يم.دټولونه اعلی اواوچته هستی هم زماده،ددې په وجه هغه الله تعالی د دنيا او د آخرت په عذابونوکښې راګيرکړلو،اودنورودپاره ئې دعبرت نشان جوړکړو.دې بدذاتوهغه په خداې منلوسره د هغۀ دماغ دې حدپورې اورسولوچه هغۀ کليم الله حضرت موسیؑ اورټلواوورته ئې اووئيل چه واوره چه کۀ تازمانه علاوه بل څوک معبودجوړکړونوزۀ به تاپه قيدکښې واچوم.هم په هغه بيکاره خلقوکښې په ناستې سره اودخپل خان په شان خبيث وزيرهامان ته وانی چه تۀ يوه بتۍ جوړه کړه اوپه هغې کښې خښتې پخې کړه،اوزمادپاره يواوچت لوړمحل جوړکړه چه په هغې اوخيژم اواوګورم چه واقعی د موسیؑ څوک خداې شته هم کۀ نه،ګوچه ماته دهغۀ ددرغوونيلوپته ده خوزۀ دهغۀ دروغ ستاسوټولوپه وړاندې ظاهرول غوارم. ﴿يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ الْاَسْبَابَ۝﴾

**فرعون صرف موسیؑ دروغژن نه ګڼړلو بلکه د اللهﷻ د وجود هم قائل نه وو:-** پدې آيت کښې دی چه يو اوچت محل ئې جوړکړو چه دې نه اوچت دنيا کښې چانه وو ليدلې.ده صرف موسیؑ دروغ نه ګڼړلو بلکه د باری تعالی د وجود هم قائل نه وو. پخپله په قرآن پاك کښې دی چه موسیؑ ته ئې اووئيل ددې بيان په ايت (وَمَا رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ۝) رب العالمين څه دې؟اوهغۀ داهم ونيلې ووچه کۀ تا زمانه علاوه بل څوک الله اومنلونوزۀ به تاقيدکړم.په دې ايت کښې هم دی چه هغۀ خپلودرباريانوته اووئيل چه زماپه علم کښې خوزمانه علاوه بل ستاڅوك الله نشته.کله چه ددۀ اوددۀ دقوم سرکشی دحدنه زياته شوه اودالله ﷻ په ملك کښې دفسادحدانتهاء ټاتې نه شوه نودهغوی عقيدې دکوټه پيسوپه شان شوې دقيامت دحساب نه بالکل منکرشونواخردالله تعالی عذابونه په دوی راووريدل. او رب دوی تخښه کړل، او جرړې ئې ورله اوکنستلې،ټول ئې په خپل عذاب کښې راګيرکړل ،اوپه يوه ورځ په يووخت کښې ټول ئې په درياب کښې غرق کړل.خلقواسوچ اوکړئ چه دظالمانوڅنګه عبرت ناك انجام وی، مونږ هم هغه جهنميانوله امامان جوړکړی دی چه دوی خلق دهغه کارونوطرف ته رابلی د کوم په وجه چه هغوی دالله تعالی په عذابونوکښې اوسوزی،څوك چه ددوی په طريقه لاړل هغوی جهنم ته لاړل او چاچه درسولانواونه منل اودالله تعالی ئې اونه منل هغه دهغوی په طريقه دې.دقيامت په ورځ به هم د هغوی هيڅ نه چليږی اونه به ورته دچرته نه څه امدادوراورسی،په دواړه جهانه کښې به دوی په نقصان اوتاوان کښې وی.څنګه چه فرمان دې (اَهْلَكْنٰهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ۝)مونږ هغوی لاندې باندې کړل،اودهغوی هيڅ څوك مددګارنه شو،په دنياکښې هم دوی لعنتيان شو،دالله تعالی دهغۀ دفرښتواودهغۀ دنبيانو او د ټولو نيکوبندګانوپه هغوی باندې لعنت دې اوهرښه انسان چه دهغوی نوم واوری نوپه هغوی به لعنت

ورلیږی په دنیاکښې کښې هم دوی لعنتیان شواوپه اخرت کښې به هم دتاوان واله وی،څنګه چه فرمان دی ﴿وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ دلته هم لعنت اوهلته هم لعنت.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ | آتَيْنَا | مُوسَى | الْكِتَابَ | مِن بَعْدِ | مَا أَهْلَكْنَا | |
| او په تحقيق سره | وركړو مونږ | موسى ته | كتاب | پس دهغې نه | چې هلاك كړل مونږه | |
| اومونږ موسى ﷺ ته د پخوانو امتونو د تباه كولو نه پس كتاب (تورات) وركړو | چې دهغې | | | | | |
| الْقُرُونَ | الْأُولَىٰ | بَصَائِرَ | لِلنَّاسِ | وَهُدًى | | |
| خلق | اولنی | چې سبب درنړا كولو دزړونو وو | دپاره دخلقو | او لارښودونكې وو | | |
| زمانې د خلقو دپاره د هوښيارتيا ذريعه وه ........................اوسراسر هدايت | | | | | | |
| وَرَحْمَةً | لَّعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُونَ ۞ | | | | |
| او رحمت وو | دپاره ددې چې خلق ترې | نصيحت واخلي | | | | |
| اورحمت وو | چې دوئ ترې نصيحت حاصل كړي | | | | | |

قوله تعالى:- وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ

**توراة نه پس يو قوم په اسماني عذاب نه بلكه د مؤمنانو دلاسه هلاک شوي دي:-** پدې ايت كښې يوه لطيف خبره داده چه دفرعونيانودهلاكت نه پس واله امتونه په داسې اسمانی عذاب سره هلاك نه شو،بلكه چه كوم امت سركشي اوكړه،دهغوی دسركشئ بدله هم په هغه زمانه كښې دنيكوخلقودلاسه الله ﷻ وركړه مومنانودمشركانوسره جهادكولوڅنګه چه فرمان بارى تعالى دي ﴿وَجَاءَ فِرْعَوْنُ وَمَن قَبْلَهُ وَالْمُؤْتَفِكَاتُ بِالْخَاطِئَةِ۞﴾ الخ يعنى فرعون اوكوم امتونه چه دهغهٔ نه مخكښې تيرشوي وواودالټاكړې شوي كلواوسيدونكی يعنى قوم لوط داټول خلق دغټوغټوغلطومرتكب شوي وو، او دخپلو خپلو زمانو درسولانوپه نافرمانئ پسې ئې ملاتړلې وه نوالله تعالى دوی ټول په ډيره سختئ سره راونيول ، ددې ډلې دهلاكت نه پس هم د الله تعالى انعام په حضرت موسى ﷺ باندې نازليدل په كوموكښې چه د يو ډيرلوئ انعام ذكردلته دي. چه هغوی ته تورات ملاوشو،ددې تورات دنازليدونه پس هيڅ قوم د اسمان يادزمكې په عذاب باندې هلاك نه كړې شوسوادهغه كلى د مجرمانونه چاچه دالله تعالى دحرمت نه خلاف دخالى په ورځ ښكاركړې وواوالله تعالى دهغوی نه خنزيران اوبيزوګان جوړكړې وو،داواقعه بيشكه دموسى ﷺ نه پس ده څنګه چه ابوسعيدخدرى ﷺ بيان فرمائيلې دې اوددې نه پس ئې دخپل قول په شهادت كښې داايت (ولقداتينا) تلاوت اوفرمائيلو.

په يومرفوع حديث كښې هم دی چه حضور ﷺ اوفرمائيل چه الله تعالى دحضرت موسى ﷺ نه پس هيڅ يوقوم په اسماني يازمكې عذاب باندې هلاك نه كړو،داسې عذابونه چه هرخومره راغلل دهغوی نه مخكښې راغلل،بيا هغوی داايت تلاوت اوفرمائيلو[1] بيانې دتورات صفات بيانيږی چه هغه خلقولره دروندتوب اوګمراهئ نه راويستونكې وواودالله تعالى رحمت وو،چه خلق ددې نه هدايت حاصل كړي اونصيحت هم اوټول په نيغه لارراشي.

| | | |
|---|---|---|
| وَمَا كُنتَ | بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ | |
| او نهٔ وې ته | په طرف دمغرب | |
| او ته دكوه طور غربي طرف ته موجود نه وې | | |

---

[1]) حاكم: ۲/۴۰۸، البزار ۲۲۴۸ و سنده صحيح مجمع الزوائد ۷/۸۸.

إِذْ قَضَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَى الْأَمْرَ وَمَا كُنتَ مِنَ الشَّٰهِدِينَ ۝٤٤

کله چي | ورکړو مونږ | موسی ته | کار درسالت | اونۀ وې ته | دحاضرينو نه

څه وخت چې مونږ موسی ﷺ ته حکم کولو | او ته په هغو خلقو کښې شامل نه وې کوم چې حاضر وو

وَلَٰكِنَّآ أَنشَأْنَا قُرُونًا فَتَطَاوَلَ

وليکن مونږه | راپورته کړل | خلق (نسلونه ډير دزماني پورې) | پس اوږده شول (تير شول) |

بيا مونږ ډير قومونه پيدا کړل | ..........بيا په هغوئ اوږده زمانه تيره شوه

عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ وَمَا كُنتَ ثَاوِيًا فِيٓ أَهْلِ مَدْيَنَ

په هغوئ باندي | عمرونه (زمانه) | اونۀ وې ته | اوسيدونکي | په خلقو دمدين کښې |

..........اوته دمدين په خلقو کښې هم ډيره نه وې چې زمونږ ايتونه دې ورته

تَتْلُوا عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِنَا وَلَٰكِنَّا كُنَّا

چې کنې اورول به دا | په هغوئ باندي | ايتونه زمونږ | وليکن | دا خو مونږه يو |

اورولي | ..........بلکه دا خو هم مونږ يو چې رسولان مو ورته ليږل

مُرْسِلِينَ ۝٤٥ وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ الطُّورِ إِذْ نَادَيْنَا

چې درليږونکي يو (دهغه وخت خبرونه) | اونۀ وې ته | په طرف دطور کښې | کله چې اواز اوکړو مونږه |

او نه ته دغه وخت د طور غر په لمنه کښې موجود وې | کله چې مونږ (موسی ﷺ) ته اواز کړې وو

وَلَٰكِن رَّحْمَةً مِّن رَّبِّكَ لِتُنذِرَ قَوْمًا

وليکن (دامعلومات ښودل) | رحمت دې | دطرفه درب ستانه | دپاره ددې چې ته اويروې | هغه قوم (خلق)

خو دا ستا د رب د طرفنه يو رحمت دې | چې ته هغه قوم (دنافرمانئ دنتيجونه) اوويروې | چا ته

مَّآ أَتَىٰهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ۝٤٦

چې نۀ دي راغلي هغوئ ته | يو يرونکي | مخکښې ستانه | دپاره ددې چې هغوئ | نصيحت قبول کړي

چې ستانه وړاندې څوک ويرونکي نه دي راغلي | د دې دپاره چې دوی ستا نصيحت قبول کړي

وَلَوْلَآ أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا

اوکه چرې نۀ وې داخبره | چې اوبه رسيږی دوئ ته | مصيبت | په سبب دهغو ګناهونو |

اوکه چرې داخبره نه وې | چې په دوئ باندې به د خپلو عملونو په وجه مصيبت راغلې وې

قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَيَقُولُوا رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ

چې مخکښې ليږلي دي | لاسونو ددوئ | نو اوبۀ وائي | اے ربه زمونږه | ولې رااونۀ ليږوتا

نوبيا به ئې دا وينا ګاني کولې | چې ائي زمونږه ربه ! تا مونږ ته په دنيا کښې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَيۡنَا | رَسُولًا | فَنَتَّبِعَ | ءَايَٰتِكَ | وَنَكُونَ | مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ |
| مونږ ته | یو رسول | اچې پیروي کړې وې مونږ | ادآیتونو ستا | او شوي وی مونږ | دمومنانونه |
| ولې پيغمبر نه وو راليږلې اچې مونږ ستا په حکمونو عمل کړې وې | | | | | | او مومنان شوي وې |

**قوله تعالى:-** وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ ٱلۡغَرۡبِيِّ

**دموسى ﷺ اود نورو په واقعاتو خبردنبی اکرم ﷺ د نبوت دليل دى:-** الله ﷻ دخپل نبی اخرالزمان ﷺ د نبوت دليل ورکوی چه هغه کس چه ان پړه وی چاچه يوحرف هم لوستلې نه وی اودمخکينوکتابونونه نا اشنا وی، دچاقوم چه دعلمی مشغلواوتيرشوی تاريخ نه بالکل بې خبره وی، هغه په تفصيل سره په وضاحت سره اوپه کامل فصاحت اوبلاغت سره بالکل ربښتوني، ټيك اوصحيح تيرشوی واقعات داسي بيان کړې ګنې چه هغهٔ په خپلوسترګوليدلې وی.اوګنې چه هغه په خپله دهغې دکيدوپه وخت کښې موجود وو، يا دا د دې امردليل نه دې چه داد الله تعالى دطرف نه دهٔ ته ښودلې کيږی.اوالله تعالى په خپله دخپل د وحی په ذريعه هغه ټولې خبرې وائی.دحضرت مريم صديقه "ها" واقعه بيانولوکښې هم قران کريم دا څيز پيش کړې دې اوفرمائيلې ئې دی ﴿وَمَا كُنتَ لَدَيۡهِمۡ إِذۡ يُلۡقُونَ أَقۡلَٰمَهُمۡ﴾ الخ.کله چه هغوی دحضرت مريم دپالنې دپاره قلمونه دفيصلې دپاره اچول هغه وخت کښې تهٔ دهغوی سره موجود نه وې. هرکله چه هغوی په خپلوکښې جهګړه کوله،پس باوجودعدم موجودګئ اوبې خبرئ ستاسو دا شان واقعه بيانول چه ګويا هغه وخت تهٔ هلته موجودوې اوستاپه وړاندې داټول واقعات تيرشوي وو ستا د نبوت کهره دليل دې. او صفانخښنه ده په دې کاربانديې چه تهٔ داد الله تعالى په وحې باندې وائې.

هم دغه شان ئې دحضرت نوح ﷺ واقعه بيان کړله ﴿تِلۡكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡغَيۡبِ﴾ داد غيب خبرې دی کومې چه مونږ د وحی په ذريعه تاپورې دررسوو.تهٔ اوستاټول قوم ددې واقعاتونه بالکل بې خبره وو،اوس په صبرسره ګوره اويقين اوساته چه دالله تعالى نه ويريدونکی نيك انجام وی،دسوره يوسف په اخره کښې هم ارشادشوې دې چه دادغيب خبرې دی کومې چه مونږ دوحی په ذريعه تاته درليږو،تهٔ ددوی په خوا کښې هغه وخت موجودنه وې،کله چه ديوسف ﷺ رونړوکلکه اراده کړې وه اوپه خپلوتدبيرونوکښې لګيدلې وو، په سوره طه کښې ئې عام طورسره اوفرمائيل ﴿كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيۡكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ مَا قَدۡ سَبَقَ﴾ هم دغه شان مونږپه مخکښې مخکينئ خبرې بيانوو،پس دلته هم د موسى ﷺ پيدائش اودهغهٔ دنبوت دشروع نه واخله تراخره پورې بيانولوسره اوفرمائيل چه اې محمد ﷺ دقبلې دطرف واله غرچرته چه مشرقي اوني دی چه دميدان په غاړه کښې وې رب العالمين دخپل کليم سره خبرې اوکړې ته موجودنه وې.بلکه الله سبحانه وتعالى دخپل وحی په ذريعه تاته داټول معلومات درکړل،چه داستادنبوت دليل شی.په هغه زمانواوختونوباندې کومې چه راروانې دی.اودالله تعالى خبرې هغوی هيرې کړی دی، د تير شوو نبيانووحی دهغوی دلاسونه ورکې شوې دی.اونه تهٔ په مدين کښې اوسيدې چه دهغه ځائې دنبی شعيب ﷺ حالات دې بيان کړې وې چه دهغه سره اودهغهٔ دقوم سره واقع شوې وې.بلکه مونږ دوحی په ذريعه داټولې خبرې تاته دراورسولې اوداټول جهان طرف ته موته خپل رسول جوړکړې اوليږلې.

**د** إِذۡ نَادَيۡنَا **نه مردد مراد څه وو او راجح قول:-** اونه دطورطرف ته وی کله چه مونږ اوازاوکړو.په نسائی کښې دی حضرت ابوهريره ﷺ فرمائی چه دااوازاوکړې شو،چه اې امت محمد اتاسوزمانه اوغواړئ ددې نه مخکښې ما تاسوته درکړو،اوتاسوماته دعاګانې کوئ مادمخکښې نه قبولې کړې[1] مقاتل وائی چه مونږ ستاامت چه لادخپلوپلارانواونيکانوپه شاګانوکښې دواوازورکړوچه کله تهٔ نبی جوکړې شې او

---

[1] حاکم: ۲/ ۴۰۸.

اوليږلې شي نوهغوى دې ستااتباع اوكړي.قتادهؒ فرمائي،ددې مطلب دادې چه مونږ حضرت موسى ؑته اوازاوكړو،دازيات مطابقت واله يوشان دې،ځكه چه پورته هم دغه ذكردې،پورته عام طور باندې بيان وودلته ئې په خاص طورسره ذكركړو،څنګه چه په ايت كښې دى(وَاِذْنَادٰى رَبُّكَ مُوْسٰى) هر كله چه ستاپروردګارموسىؑته اوازاوكړو،په بل ايت كښې دى چه په مقدسه وادئ كښې الله تعالى خپل كليم ته اوازاوكړو،په بل ايت كښې دى چه دهٔ ته مونږ دطورايمن دطرف نه اوازاوكړو،اوپټې خبرې مو ورسره كولې اوخپل قربت مووړته وركړو،بيافرمائي چه په دې كښې يوه واقعه هم ستا د موجودګئ يا پخپلوسترګوليدلې نه ده،بلكه دادالله ﷻوحي ده چه پخپل رحمت سره په تانازله وى،اوداهم يو رحمت دې چه تهٔ ئې دخپل بندګانوطرف ته نبي جوړكړې اووې ليږلې،چه تهٔ دوى خبرداره او هوښيار كړې چه چاته ستانه مخكښې څوك نبي نه وو راغلې،چه هغوى نصيحت حاصل كړي.اوهدايت بيا مومي.

**قوله تعالى:-وَلَوْلَآاَنْ تُصِيْبَهُمْ مُّصِيْبَةٌ**

**د رسولانو په راستولو كښې حكمت:**-اوددې وجې نه هم چه دهغوى څه دليل باقي پاتې نه شي.اوڅه بهانه دهغوى په لاس كښې پاتې نه شي،دوى دخپل كفرپه وجه عذابونولره په راتګ چه اووينى نوچه دا اونه وائي چه دوى لره څوك رسول راغلې نه وو،چه دوى ته ئې دنيغې لارې تعليم وركړې وې،اوځنګه چه په بل ځائې كښې دخپل مبارك كتاب قران مجيددنزول بيان فرمائي،وې فرمائيل چه داځكه دې چه تاسوداأونه وايئ چه كتاب خوزمونږ نه مخكښې په دوؤډلوراكوزشوې وو،ليكن مونږ ددې د بنودلواولوستلونه بالكل غافل وو،كه په مونږكتاب نازل شوې وې نويقيناًمونږ به ددې نه زيات په نيغه لاره وې،اوس اووانيه چه تاته په خپله ستادرب دليل اوهدايت اورحمت راغلې دې،په بل ايت كښې دى،رسولان دى زيرى وركولو واله اوويره ولوواله چه ددې رسولانوپس دهيچاڅه حجت په الله ﷻ باقي پاتې نه شي.په بل ايت كښې ئې اوفرمائيل(يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ) الخ.اې اهل كتاباهغه زمانه چه درسولانونه په عدم موجودګئ كښې روانه وه زمونږ رسول تاسوته راغې،اوس تاسودانه شئ وئيلې چه مونږ ته څوك ويرونكى اوخوشخبرئ واله نه وو راغلې،واخلئ خوشخبرئ وركولوواله اوويرونكې تاسوته دالله تعالى دطرف نه راغئ نورايتونه هم ددې مضمون ډير دى.غرض داچه رسول اللهﷺراغې اوستاسوغذركټ شو،چه كهٔ رسول اللهﷺراغلې وې نومونږ به دهغهٔ منلې اومومن شوې به وې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | جَآءَهُمُ | الْحَقُّ | مِنْ عِنْدِنَا | قَالُوْا | لَوْلَآ اُوْتِيَ |
| پس هر كله چى | راغې هغوئ ته | حق | دطرفه زمونږ نه | نووې وئيل | ولې ورنهٔ كړې شو دهٔ ته |
| خو كله چې دې خلقوته زمونږ طرف نه حق اورسيدو انو دوئ وائي چې دې نبى ته هم هغه څه ولې ورنكړې شو | | | | | |
| مِثْلَ مَآ | اُوْتِيَ | مُوْسٰى ط | اَوَلَمْ يَكْفُرُوْا | بِمَآ | |
| په شان دهغې | چى وركړې شوى وو | موسى ته | آيا نهٔ دې كړي انكار دې خلقو | په هغې | |
| چې موسى ؑ ته وركړې شوى وو | ايا څه چې ددې نه وړاندې موسى ؑ ته وركړې شوې وو | | | | |
| اُوْتِيَ | مُوْسٰى | مِنْ قَبْلُ ج | قَالُوْا | سِحْرٰنِ | تَظٰهَرَا |
| چى وركړې شوى وو | موسى ته | مخكښې ددې نه | اووئيل هغوئ | دواړه جادو دي | چى ديوبل امداد كوى |
| نودوئ د هغې نه انكار اونكړو | څه وخت چې دوئ وئيلى وو چې دادواړه يو بل سره مدد كونكى جادوګردى | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالُوٓا | اِنَّا | بِكُلٍّ | كٰفِرُوْنَ ﴿٤٨﴾ | قُلْ | فَأْتُوْا | بِكِتٰبٍ |
| اواوئيل هغوئ | بيشكه مونږه | هر يولره | نهٔ منونكي يو | ورته اووايه | پس راوړئ | يو كتاب |

اودا وائي چې مونږ د ټولو نه انكاريان يو | ..................(ائي پيغمبره) ته ورته اووايه كه چرې تاسو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ | هُوَ | اَهْدٰى | مِنْهُمَآ | اَتَّبِعْهُ |
| دطرفه دالله نه | چې هغه | زيات لاربنودونكي وي | ددې دواړونه | زهٔ به هم پيروي اوكړم دهغې |

دعوى كښې ريښتوني يئ انو تاسو دالله دطرفه يوداسې كتاب راوړئ اچې ددې دواړو كتابونو (قران اوتورات)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ ﴿٤٩﴾ | فَاِنْ لَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا | لَكَ | فَاعْلَمْ |
| كه چرې يئ تاسو | ربښتيني | پس كه قبوله نهٔ كړه هغوئ | داخبره ستا | نوپوهه شه |

نه په هدايت كښې زيات ښه وي انو زه به هم دهغې پيروي او كړم ابيا كه دوئ تاته جواب درنه كړو نوپوهه شه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنَّمَا | يَتَّبِعُوْنَ | اَهْوَآءَهُمْ ط | وَمَنْ | اَضَلُّ | مِمَّنِ |
| چې بيشكه | پيروي كوي دوئ | دخواهشاتو خپلو | او خوك دي | ډير گمراهه | دهغه چانه |

چې دوئ صرف پخپلو خواهشاتو پسې روان دي | او د هغه سړي نه به زيات گمراه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اتَّبَعَ | هَوٰىهُ | بِغَيْرِ هُدًى | مِّنَ اللّٰهِ ط | اِنَّ اللّٰهَ | لَا يَهْدِي |
| چې روان شو | په خواهشاتو خپلو پسې | بغير دهدايت | دالله نه | بيشكه الله | لار نهٔ ښائي |

بل څوك وي | چې دالله ﷻ د هدايت نه بغير دخپل خواهش تابعداري كوي | بيشكه الله ﷻ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْقَوْمَ | الظّٰلِمِيْنَ ﴿٥٠﴾ ع | وَلَقَدْ وَصَّلْنَا | لَهُمُ | الْقَوْلَ |
| قوم (خلقو) | ظالمانوته | په تحقيق سره رسولي ده مونږه | دوئ ته | خبره دنصيحت |

ظالمانو خلقو ته لار نه ښائي | او مونږ خلقو ته پرله پسې خپل حكمونه رالېږو

| | |
|---|---|
| لَعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٥١﴾ ط |
| دپاره ددې چې دوئ | نصيحت قبول كړي |

د دې دپاره چې هغوئ نصيحت قبول كړي

**قوله تعالى:- فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ**

**دكفارودېوسوال جواب**.-مخكښې بيان شوچه كهٔ دنبيانودراليږلونه وراندې مونږ په هغوى باندې عذاب راليږلې نودهغوى به داخبره پاتې شوې وه چه كهٔ مونږ له رسولان راغلي وې مونږ به دهغوى خبرهٔ ضرورمنله،ددې وجې نه مونږرسولان اوليږل.خاص كرحضرت محمدﷺ اوخرالزمان رسول اوليږلوس كله چه حضورﷺ هغوى ته ورغې نوهغوى سترگې واړولې،اومخ ئې اوگرځولو، او د تكبر او دشمنئ سره سره ئې په ضد كولوسره اووئيل چه څنگه حضرت موسىؑ ته ډيرې معجزې وركړې شوې وې لكه څنگه چه لرگې اولاس اوطوفان اوملخان اوسپگئ اوچيندخان اووينه اودغلوميووكمې وغيره چه دهغې په وجه د الله تعالى دشمنان تنگ شواودرياب شلول اودوريخې سورې كول.او(من وسلوى) راكوزيدل وغيره، چه زبردستې اولوې لوې معجزې وې دهٔ ته ولې ورنكړې شوې؟الله تعالى فرمائى چه داخلق كومه واقعه د مثال په طورسره پيش كوى اوكومې كومې معجزې غواړى كه دوى دمعجزې په خپله د كليم الله دلاسو په كيدوسره ليدلې وې نوڅه ايمان ئې راوړې وو،چه اوس ددوى دايمان دراوړلوڅوك.

خواهش اوکړی؟ هغوی دتولومعجزوپه صفالیدوسره ونیلي ووچه دادواړه رونړه مونږ دمشرانو د تابعداریٔ نه لرې کول غواړي.اوخپله لونی په مونږ منل غواړي،مونږپه هیڅ کله هم دوی اونه منو، دوانړونبیانولره ئې دروغژن ونیل،اوپه اخره کښې هلاك کړې شو.نووي فرمائیل چه ددوی مشرانوچه دحضرت موسیؑ په زمانه کښې ئې کفرکړې وواودې معجزولیدوسره ئې صفاونیلي ووچه دادواړه رونړه جادوګران دی.په خپلو کښې ئې اتفاق کړې دې اوپه مونږ خپل خان مشران جوړولودپاره راغلی دی.مونږ خوپه دوی دواړو کښې یوهم نه منو.

قوله تعالی:- مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى ط

ذکرموسیٰ ؑ دې خومراد ترې موسیٰ ؑ او هارون ؑ دواړه دی:-دلته ذکراګرچه صرف دحضرت موسیٰ ؑ دې خوچونکه حضرت هارون ؑ د هغهٔ سره داسې ملګرې ووچه ګویاهغوی دواړه یووو، نو د یوذکرلره ئې دبل دپاره کافی اوګنړلو،څنګه چه دیوشاعروینادہ،چه کله زهٔ دیوخانې اراده کوم نوماته پته نه وی چه هلته به ماته ګټه ملاویږی یابه زمانقصان کیږی؟نودلته هم شاعردخیرلفظ خوونیلي دې خودشرلفظ ئې بیان کړې نه دې.څکه چه په خیراوشردواړوکښې ملازمت تعلق اومصاحبت دې.مجاهد فرمائی چه یهودیانوقریشوته اوونیل چه تاسوپه حضورﷺ دااعتراض اوکړیٔ هغوی ورته اوونیل اوپه جواب اوریدوسره خاموش پاتې شو. (۱)

قوله تعالی:- سِحْرٰنِ تَظٰهَرَا ٭

یوقول داهم دې چه ددواړوجادوګرانونه مراد حضرت موسیٰ ؑ اوحضورﷺ دې.یوقول داهم دې چه مرادترې عیسیٰ ؑ اوحضورﷺ دې. خو په دې دریم قول کښې دوخت ډیرزیات والي دې،او ددویم قول نه اولنې قول زیات مضبوط اوښه دې.اوډیرقوی هم دې.والله اعلم.

دامطلب د(ساحران) په قرات باندې دې.اودچاقرات چه (سحران) دې هغوی وائی چه مرادترې تورات او قران دې.(۲) چه دیوبل تصدیق کونکی دی.څوك وائی چه مرادترې تورات اوانجیل دې.دچاقول دې چه انجیل اوقران ترې مراددې ،والله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب.

خوددې په قرات باندې په ظاهره دتورات اوقران معنی ټیك ده.څکه چه ددې نه پس دالله تعالی فرمان دې چه تاسوددې دواړونه زیات دهدایت واله کتاب دالله تعالی په وړاندې پیش کړیٔ.چه دهغې تابعداری زهٔ اوکړم.تورات اوقران کریم لره اکثرپه یوخائې کښې قران کریم بیان فرمائیلي دې څنګه چه ئې اوفرمائیل(قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِيْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا وَّهُدًى لِّلنَّاسِ) پس دلته دتورات معنی ئې نوراوهدایت ذکراوفرمائیله،بیائې اوفرمائیل( وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ )اوداکتاب هم مونږ دبرکت واله کړواونازل کړې مودې.اودسورت په اخره کښې ئې اوفرمائیل(ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ) بیامونږموسیٰ ؑ ته کتاب ورکړو.او فرمان دې چه زمونږ ددې نازل کړې شوې مبارك کتاب تاسو پیروی کویٔ،دالله تعالی نه ویریږیٔ چه په تاسورحم اوکړې شی.

دجنات قول په قران کریم کښې دې،چه هغوی اوونیل ،مونږ هغه کتاب واوریدو چه دموسیٰ ؑ نه پس نازل کړې شوې دې.چه دخپل خان نه مخکښې دالله تعالی کتابونولره رښتونې ګرخولوواله دې.دورقه بن نوفل قول دحدیث په کتابونوکښې ذکردې چه هغهٔ ونیلي ووچه دې هم هغه دالله تعالی رازداراوپټوخبروباندې پوهیدونکې دې چه دحضرت موسیٰ ؑ نه پس ستاسوطرف ته رالیږلي شوي دې.(۳) کوم کس چه په وسیع نظریٔ سره دعلم مطالعه کړې وی په هغه داخبره بالکل ظاهره ده چه په

(۱) الطبری: ۵۸۸/۱۹.
(۲) ایضاً:۵۸۹/۱۹.
(۳) صحیح بخاری کتاب بدء الوحی الی رسول الله ﷺ، صحیح مسلم:۱۶۰.

اسمانی کتابونوکښې دټولونه زيات دعظمت اوشرافت اوعزت اوكرامت واله كتاب هم دا قران مجيددي چه الله تعالى حميداومجيدپه خپل روف ورحيم نبى اخرالزمانﷺباندې نازل كړو.ددې نه پس دتورات درجه ده،چه په هغې کښې هدايت اونورو.چه دهغې مطابق به انبياء كرامو حكمونه جاري كول،انجيل خوصرف تورات لره پوره كولوواله اوبعضې حراموله حلال ګرځولوواله وو،

قوله تعالى:-قُلْ فَأْتُوا بِكِتٰبٍ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ

دووئ د اعتراض جواب:-څکه نې دلته اوفرمائيل چه ددې دواړوكتابونونه بهتركتاب كه تاسودالله تعالى په وړاندې پيش كړئ نوزه دهغې تابعدارى كولوته تياريم.بيانې اوفرمائيل چه څه تاسووايئ كه هغه هم دوى اونه كړى اونه ستاسوپه تابعدارئ كښې راشي نوپوهه شه چه دوى ددليل اوبرهان څه حاجت نشته،دوى صرف جګهړه كونكى دى اودخواهش غلامان دى.اوظاهره ده چه دخواهش دپابندو خلقوچه دربانى هدايت نه خالى وى نه زيات څوك ظالم نه دې.په دې كښې توجه كولوسره چه كوم خلق پخپلوخانونوباندې ظلم اوكړى هغوى تراخره پورې دنيغې لارې محروم پاتې شى.مونږ ددوى دپاره تفصيلى قول بيان فرمائيلې دې اوواضحه موكړه،اوښكاره موكړه.مخكښې اوروستنئ خبرې مويبان كړې،نودقريشوپه وړاندې موهرڅه ظاهركړل(۱)بعضې ددې مرادرفاعه اخلى اودهغه سره نهه نور كسانوهم.دارفاعه دحضرت صفيه بنت حيى ﷺ ماماوو،چاچه تميمه بنت وهب ته طلاق وركړې وو، د چاچه دويمه نكاح دعبدالرحمان بن زبيرﷺ سره شوې وه.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلْكِتٰبَ | اٰتَيْنٰهُمُ | اَلَّذِيْنَ | | |
| كتاب | هغوئ ته | چې وركړې وو مونږ | هغه كسان | |

چا ته چې مونږ (دقران مجيد) نه مخكښې كتاب وركړې دې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالُوْٓا | عَلَيْهِمْ | يُتْلٰى | وَاِذَا | يُؤْمِنُوْنَ ؈ | بِهٖ | هُمْ | مِنْ قَبْلِهٖ |
| نو وائى | هغوئ ته | كيږى | اوروليې | او كله چې | ايمان راوړى | په دې قران | هغوئ | مخكښې ددې نه |

هغوئ په دې (قران) باندې هم ايمان راوړى | اوكله چې ورته قران لوستلې شى | نو دوئ وائى

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّا كُنَّا | مِنْ رَّبِّنَآ | اِنَّهُ الْحَقُّ | بِهٖٓ | اٰمَنَّا | |
| چې ايمان راوړو مونږه | په دې باندې | بيشكه چې دا حق دې | د طرفه درب زمونږ | نه | بيشكه وو مونږه |

چې مونږ په دې ايمان راوړې دې | چې دا زمونږ د رب د طرفه حق دې | مونږ خو (ددې دراتلونه)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَجْرَهُمْ | يُؤْتَوْنَ | اُولٰٓئِكَ | مُسْلِمِيْنَ ؈ | مِنْ قَبْلِهٖ | |
| اجر ددوئ | وركړې كيږى به دوئ ته | دا كسان چې دى | مسلمانان | مخكښې ددې نه | |

وړاندې تابعدار ووا ..................دغه خلقو ته به د دوئ د صبر به وجه دوه څله

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْحَسَنَةِ | وَيَدْرَءُوْنَ | صَبَرُوْا | بِمَا | مَّرَّتَيْنِ |
| په نيكئ سره | او منع كوى دوئ | چې صبر اوكړو دوئ | په سبب دهغې | دوه څله |

څله ثواب وركولې شى | ...... ...... او دوى د نيكئ په ذريعه بدى لرى كوى

---

(۱) الطبرى:۱۹/۵۹۳-۵۹۴.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| السَّيِّئَةَ | وَمِمَّا | رَزَقْنٰهُمْ | يُنْفِقُوْنَ۝ | وَاِذَا | | |
| بدئ لره | او دهغه رزق نه | چي ورکړي دي مونږ دوئ ته | خرچ کوي دوئ | او کله چي | | |
| اومونږ چي دوئ ته څه ورکړي دي د هغې نه خرڅ کوي ......... او هرکله چي | | | | | | |
| سَمِعُوا | اللَّغْوَ | اَعْرَضُوْا | عَنْهُ | وَقَالُوْا | لَنَآ | اَعْمَالُنَا |
| واوريده هغوئ | عبث خبره | انو مخ ئې واړوو | د هغې نه | اووې وئيل | مونږ لره دي | عملونه زمونږه |
| عبث خبره واوري نو مخ ترې نه اوګرځوي او وائي چي زمونږ دپاره خپل عملونه دي | | | | | | |
| وَلَكُمْ | اَعْمَالُكُمْ | سَلٰمٌ | عَلَيْكُمْ | لَا نَبْتَغِي | | |
| او دي تاسو لره | عملونه ستاسو | سلامتيا دوی | په تاسو باندي | نهٔ غواړو مونږه | | |
| اوستاسو دپاره ستاسو عملونه دي زمونږ د طرفه په تاسو سلام دي مونږ د جاهلانو (ملګرتيا) | | | | | | |
| الْجٰهِلِيْنَ۝ | | | | | | |
| طريقه دجاهلانو | | | | | | |
| نه غواړو | | | | | | |

**قوله تعالى:- اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ**

**اهل کتاب ته په نيکوعملونوباندې دوه اجره:-** اهل کتاب عالمان چه په اصل کښې دالله ﷻ دوستان وو، د هغوی پاکيزه اوصاف بيانيږی.چه هغوی قران مني.څنګه چه فرمان دې،چاته چه مونږ کتاب ورکړو، او هغوی په پوهه سره لولي،دهغوی خوبه دې قران باندې ايمان دی.په بل ايت کښې دی چه بعضې اهل کتاب داسې هم دی چه دالله تعالی دمنلوسره ستاطرف ته نازل کړې شوی کتاب اوخان طرف ته نازل شوې کتاب هم مني.اودالله تعالی نه ويريږی.په بل ځائې کښې دی چه داسې اهل کتاب هم شته چه زمونږدقران ايتونه واوری نوپه سجده کښې پريوځي اوپه ژبې سره وائي ﴿سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا۝﴾ په بل ايت کښې دی ﴿وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى﴾ الايه :يعنی دمسلمانانوسره په دوستئ کولوپه اعتبارسره به تاسوپه خلقوکښې نزدې هم دوی بيامومي;چه خپل خان ته نصاری وائي.څکه چه په دوی کښې عالمان او مشائخ دی.اوداخلق دکبراوغرورنه خالی دی.اودقران په اوريدو سره په ژړاشي.اواووائي چه زمونږ ايمان دې الله تعالی دې مونږ لره هم ددين دمنلوواله اوليکی. سعيد بن جبير﷜فرمائي چه دچاپه باره کښې دافرمانيلې شوې دی دااويابزرګ عالمان وو،چه دحضورﷺپه خدمت کښې دنجاشی دطرف نه راليږلې شوې وو.حضورﷺهغوی ته سوره ياسين واورولو،چه دهغې په اوريدوسره هغوی په ژړاشو،اومسلمانان شو.دهغوی په باره کښې دااېتونه نازل شو،چه هغوی ددې داوريدوسره دخپل موحداومخلص کيدواقرارکوی. اوقبلولوسره مومنان اومسلمانان شی.ددوی ددې صفتونه په وجه الله ﷻدوی ته دوچنده اجرورکوی.اولنې دکتاب دمنلواودويم ددې قران دتسليم کولو اوپرې دعمل کولو.دوی دحق په اتباع باندې ثابت قدمی کوی چه په اصل کښې يوسخت اواهم کاردې.

**درې قسمه خلقوته دوچنده ثواب ملاويږی.-** دحضورﷺارشاددې چه درې قسمه خلقوته دوچنده ثواب ملاويږی.اهل کتاب چه دخپل نبی دمنلوسره بياپه ماباندې ايمان راوړی.غلام اونوکرچه دخپل مجازی مالك دحکم پوره کولوسره دالله تعالی دحق اداکول هم کوی.اوهغه کس دچاسره چه يو وينځه وی

چه هغې ته علم اوادب اوښائي بیاهغه ازاده کړي اونکاح ورسره اوکړي(¹ )قاسم سیدنا بن ابو امامه
وائي چه دمکې دفتح کیدوپه ورځ زه درسول الله ﷺسره جخت بالکل دسورلۍ په خواکښې وم.حضور ﷺ
ډیرې ښې خبرې ارشاداوفرمائیلې چه په هغې کښې ئې داهم اوفرمائیل چه په یهودواونصاروکښې
څوك مسلمان شي دهغۀ دپاره دوچنده اجردې .اودهغۀ دعام مسلمانانو برابر حقوق دي.(²) بیادهغوی
نیك خوئیونه بیانیږي.چه دوی دبدئ بدله په بدئ سره نه اخلي.بلکه معاف کول کوي. اودرګزر
کوي.اوهم نیك سلوك کوي.اوخپلې حلالې روزئ دالله تعالی په نامه خرج کوي.اودخپلو ماشومانو د
رزق خیال هم ساتي.زکواة،صدقات،خیرات کښې هم دشومتیانه کارنه اخلي.دفضول خبرونه ځانونه بچ
ساتي.دداسې خلقوسره دوستئ نه کوي دداسې مجلسونونه لرې اوځي،بلکه که چرته پرې ناګهانه
ورشي نوپه شرافت سره پرې تیرشي.دداسې خلقوسره ناسته پاسته اودوستانه نه کوي صفاورته وائي چه
تۀ څه کوې هغه تاسره اوزمونږ سره یعني دجاهلانوسختې خبرې هم برداشت کوي.هغوی نه
داسې جواب نه ورکوی چه هغوی پرې نورهم غصه شي بلکه چشم پوشي پرې کوي.اوچل ورسره کوي.
چونکه پخپله پاك نفس والادی ددې وجې پاکیزه کلام دخولې نه اوباسي.وائي چه په تاسودې
سلامتیاوی،مونږ نه دجاهلانوپه لاره ځو،اونۀ دجهالت تګ خوښوو.

**رسول کریم ﷺ ته د حبشی وفد او دهغوئ ایمان راوړل اود ابوجهل په پیغور ددوئ جواب:**-ابن سحاق رحمه الله فرمائي چه
حضور ﷺ ته دحبشې نه تقریباًشل نصرانیان راغلل،حضور ﷺ په هغه وخت کښې په جومات کښې تشریف
فرماوو.دوی دلته کښیناستل.اوخبرې اترې ئې شروع کړې.دغه وخت قریش په خپلو خپلو بیټکونو
کښې دکعبې نه ګیرچاپیره ناست وو.دې عیسائی عالمانوچه کله سوالونه اوکړل او د جوابونوسره
دهغوی تسلي اوشوه نوحضور ﷺ دهغوی په وړاندې دین اسلام پیش کړو.اودقران کریم تلاوت ئې
هغوی ته واورولو.چونکه داخلق تعلیم یافته اودروښانه دماغوواله وو،قران ددوی په زړونو اثر
اوکړواودهغوی دسترګونه اوښکې په بهیدوشوې.دوی فوراً دین اسلام قبول کړو.اودالله تعالی په
رسول ﷺ باندې ئې ایمان راوړو.ځکه چه په حضور ﷺ کښې کوم کوم صفتونه هغوی په خپلواسماني
کتابونو کښې لوستلې ووهغه ټول ئې په حضور ﷺ کښې موجودبیاموندل.کله چه داخلق د حضور ﷺ د
ځوانه واپس تلل نوابوجهل لعنتی دخپلوملګروسره دوی سره په لاره کښې ملاوشو.او ټولو قریشیانوپه
شریکه دوی ته پیغورنه کول اوبدردنې ورته ونیل.چه ستاسونه زیات بدترین وفدمونږ د هیڅ یوقوم نه
وو لیدلې.ستاسوقوم تاسوددې کس دحالاتومعلومولودپاره راولیږلئ اودلته چه تاسو راغلئ نوخپل د
پلار نیکۀ مذهب موپریښودو،اودهغۀ رنګ په تاسوسورشوچه په لږ شان وخت کښې مو خپل دین بدل
کړواودهغۀ کلمه مواوونیله.ستاسونه زیات بې وقوفه خومونږ هډوڅوك لیدلې نه وو وغیره وغیره.
هغوی داهرڅه په تسلئ سره واوریدل اوجواب ئې ورکړوچه مونږ تاسوسره دجاهلانوپه شان خبرې کول
نه خوښوو،زمونږ دین زمونږ سره اوستاسومذهب تاسوسره،مونږ چه په کومه خبره کښې خپله ښیګړه
اولیده هغه موقبوله کړه.داهم ونیلې کیږي چه داوفدنجران دعیسائیانووو.والله اعلم.
داهم ونیلې شوې دی چه داایتونه هم دهغوی په باره کښې نازل شوی دی.داامام زهری رحمه الله نه ددې
ایتونودشان نزول په باره کښې تپوس اوکړې شونوهغوی اوفرمائیل،ماخودخپلوعالمانونه هم دغه
اوریدلې دی چه داایتونه دنجاشی اودهغۀ داصحابو رضی الله عنهم په باره کښې نازل شوی دی.اودسوره مائده
ایتونه(ذٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا) نه( مَعَ الشّٰهِدِيْنَ۝)پورې ایتونه هم ددوی په باره کښې نازل شوی دي.

¹) صحیح بخاری کتاب العلم باب تعلیم الرجل امته واهله:۹۷، صحیح مسلم:۱۵٤ ،ابوداوُد:۲۰۵٤ ، ترمـذی:۱۲۱٦ ابـن ماجه:۱۹۵٦ ، احمد:٤/۳۹۰، ابن حبان:۲۲۷.

²) احمد:۲۵۹/۵ ح ۲۲۲۳٤ ، تفسیر طبری: ۱٤۲/۲۷ وسنده حسن.

إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ

| بیشکه ته چې نې | نشې ښودلې لارته | هغه چاته | چې خوښوې نې ته |

| ..................(ائې محبوبه) ته چې چاته غواړې (پخپلې خوښې) سره هدايت نشې کولې

وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ ۚ وَهُوَ أَعْلَمُ

ولیکن الله | ښائی لار | هغه چاته | چې غواړی نې هغه | او هغه | ښه عالم دې

بلکه الله ﷻ چې چاته هدايت کول اوغواړی نو هدايت ورته کوی | اوهدايت قبلوونکی هغه ته

بِالْمُهْتَدِينَ ۝ وَقَالُوا إِنْ نَتَّبِعِ الْهُدَىٰ

په هدايت موندونکو باندې | اووائی دوئ | که چری | پیروی اوکړه مونږه | دهدايت (دحق لارې) |

ښه معلوم دی | ..................او دوئ (تاته) وائی که مونږ تاسره د دې هدايت تابعداری اوکړو

مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ أَرْضِنَا ۚ أَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَهُمْ حَرَمًا

ستاسره | نواوبه ویستلې شو | دزمکې زمونږ نه | آیا نۀ دې ورکړې مونږ | دوئ ته | حرم

نو د خپل ملک نه به اوشړلې شو | ایا مونږ د دوئ د استوګنې دپاره حرم د امن ځائې نه دې ګرځولې

آمِنًا يُجْبَىٰ إِلَيْهِ ثَمَرَاتُ كُلِّ شَيْءٍ رِزْقًا مِنْ لَدُنَّا

خائې دامن | چې راچلولې کیږی | هغې ته | میوې | دهر څیز | رزق | دطرفه زمونږ نه |

..................چې دې ته هر قسم میوې (د ضرورت څیزونه) رارسولې شی | دازمونږ د طرفنه ددوئ رزق دې

وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝

ولیکن | زیات خلق ددوئ | نۀ پوهیږی |

خوپه دوئ کښې زیات خلق په دې خبره نه پوهیږی |

**قوله تعالى:- إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ**

هدايت ورکول دنبی په اختيارکښې نه دی:اې نبی!څوك دهدايت طرف ته راوستل ستادوس کارنه دې، ستاکارخوصرف دالله تعالی دپيغام رسول دی.دهدايت مالك رب دې.هغۀ چه په خپل حکمت سره څوك اوغواړی دهدايت دقبلولوتوفيق ورکوی،څنګه چه فرمان دې(لَيْسَ عَلَيْكَ هُدَاهُمْ)ستاپه ذمه ددوی هدايت نه دې که هغه اوغواړی نوهدايت ورکړی.په بل ايت کښې دی(وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ۝) ګوکۀ ته هرڅومره طمع اوساتې خوپه دوی کښې اکثرايمان نه راوړونکی دی دادالله ﷻ په علم کښې دی چه د هدايت حقدارڅوك دې؟اودضلالت حقدارڅوك دې.بخاری اومسلم کښې دی چه داايت درسول اللهﷺ د ترۀ ابوطالب په باره کښې نازل شوې وو.چه دحضورﷺ يرزيات طرفتدارو،اوپه هره موقعه به نې د حضورﷺمدد کولو.اودحضورﷺملګرتيابه نې کوله،اوپه زړۀ سره به نې محبت کولو،خودامحبت درشته دارئ په وجه طبعی ووشرعاً نه وو،کله چه دهغۀ دمرګ وخت رانزدې شونوحضورﷺهغۀ ته اسلام ته د راتلودعوت ورکړو.اودايمان راوړلورغبت نې ورکړو، خو د تقديرليك او دالله تعالی خوښه غالبه شوه اودې دلاسونه اوخويدو،اوپه کفرياندې پاتې شو. حضورﷺ دهغۀ دوفات په وخت دهغۀ خواته راغې ،ابوجهل اوعبدالله بن ابی اميه هم دهغۀ په خواکښې ناست وو، حضورﷺ ورته اوفرمائيل(لااله الاالله) اووائيه،زۀ به ددې په وجه دالله تعالی په درباركښې ستادپاره سفارش کونکې جوړشم.ابوجهل او

عبدالله ورته اوونيل،ابوطالبه،اياته به دخپل پلارعبدالمطلب د مذهب نه اوګرځې،حضورﷺبه پوهولو اوهغوی دواړوبه منع کولو،تردې پورې چه اخری کلمه دهغۀ دخولې نه هم دااوته چه زۀ داکلمه نۀ وائيم، اوزۀ دعبدالمطلب په مذهب باندې يم.حضورﷺورته اوفرمائيل چه بهتره ده زۀ به ستادپاره دالله تعالی په دربارکښې استغفارکوم ،اودابله خبره ده که زۀ منع کړې شوم ياالله تعالی مامنع کړی.ليکن هم هغه وخت ايت نازل شو ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ﴾ يعنی نبی اومومنانو سره هيڅ کله دا خبره نه ښائی چه هغوی دمشرکانودپاره استغفاراوکړی خواه کۀ ددوی نزدې رشته دار هم ولې نه وی.اوهم ددې ابوطالب په باره کښې داايت﴿إِنَّكَ لَا تَهْدِي﴾ هم نازل شو.([1]) ترمذی وغيره کښې دی چه ابوطالب ته خنکدن په وخت کښې حضورﷺاوفرمائيل چه اې زماترۀ(لااله الاالله) اووائيه زۀ به ددې دقيامت په ورځ ګواهی ورکړم،نوهغۀ ورته اوونيل چه کۀ ماسره دخپل خاندان قريش ددې پيغور ويره نه وې چه هغۀ دمرګ دويرې نه داکلمه اوونيله نومابه داونيلې وې اوستاسترګې به مې يخې کړې وې.مګربيابه مې هم ستادخوشحالولودپاره ونيله،په دې داايت نازل شو([2])په دويم روايت کښې دی چه په اخره کښې هغۀ دکلمې ونيلونه انکاراوکړو.اوصفائي اوونيل چه زماورارۀ زۀ خودمشرانويه لاره باندې يم،اوهم پدې خبره دهغۀ مرګ راغې،چه هغۀ دعبدالمطلب په مذهب باندې دې.دقيصر استاذې چه کله دحضورﷺپه خدمت کښې حاضر شو اودقيصر خط نې دحضورﷺ په خدمت کښې پيش کړونو حضورﷺهغه په خپل غيږ کښې کيښودواوهغۀ ته نې اوفرمائيل چه تۀ دکومې قبيلې نه نې؟هغۀ ورته اوونيل دتنوع تبرج قبيلې کس يم.حضورﷺورته اوفرمائيل ستاارادہ دۀ چه تۀ دخپل پلار ابراهيمؑ دين باندې راشې؟هغۀ ورته جواب ورکړوچه زۀ دکوم قوم استاذې يم ترڅوپورې چه هغوی ته د هغوی د پيغام جواب وراونۀ رسوم دهغوی مذهب پريخودې نه شم.نوحضورﷺمسکې شو او خپلو اصحابوطرف ته نې اوکتل اوداايت نې اولوستلو. ابن ابی حاتم رسول قيصر پورې حسن دې خود رسول قيصر مسلمان کيدل ثابت نه دی نودا روايت مردود دې. سعيد ترمذی او ابن حبان ثقه او صدوق ګرځولې دې نو په قول راجح کښې هغه حسن الحديث دې) مشرکانوبه دخپل ايمان نه راوړلو يوه وجه داهم بيانوله چه کۀ مونږ ستار اوړې شوې هدايت اومنونومونږ سره ويره ده چه ددې دين مخالف چه زمونږ ګير چاپيره دی اوبه شمير کښې زمونږ نه ډيرزيات دی هغوی به زمونږ دشمنان جوړ شي اومونږ ته به تکليف رااورسوی او مونږ به بربادکړی.الله تعالی فرمائی چه ددوی داخيله هم غلطه ده الله تعالی دوی په حرم محترم کښې ساتلې دی کوم خائې کښې چه ددنيادشروع کيدونه واخله تراوخه پورې امن او امان دې ،نوداځنګه کيدې شی چه په حالت کفرکښې خودلته په امن سره اوځی اوکله چه دالله تعالی رښتونې دين قبول کړی نوامن اوچت شی؟هم دغه خوهغه ښاردې چه دطائف وغيره مختلفوځائيونونه ميوې،سامان،اسباب،مال تجارت وغيره تګ راتګ دلته په کثرت سره وی ،ټول څيزونه دلته راځی، اومونږ دوی ته په ناسته روزئ وررسوو،خوبه دوی کښې اکثريت دبې علمودې،ددې وجې داقسمه فضول حيلې اوبې ځائه عذرونه پيش کوی،روايت دې چه داونيونکې حارث بن عامربن نوفل وو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَهْلَكْنَا | وَكَمْ | | |
| هلاک کړی دی مونږه | او څومره ډير | | |
| اومونږ داسې ډير کلې تباه کړی دی | ......... | | |

[1]) صحيح بخاری کتاب الجنائز باب قال المشرك عندالموت لااله الاالله:١٣٦٠، صحيح مسلم: ١٠٢٤،احمد:٤٣٣/٥، ابن حبان: ٩٨٢. (صحيح مسلم وغيره)

[2]) صحيح مسلم كتاب الايمان باب دليل على صحة الاسلام من حضره الموت:٢٥،ترمذی:٣١٨٨

مِنْ قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا ۚ فَتِلْكَ مَسٰكِنُهُمْ

داسي کلي | چي مست شوي وو | په روزګار دژوند خپل باندي| پس دغه دي | کورونه دهغوئ |

چي د ژوند په روزګار خان ته غاوره شوي وو | نودا ددوئ (تباه شوي ) کورونه (ستاسو په وړاندي) دي

لَمْ تُسْكَنْ مِّنْ بَعْدِهِمْ اِلَّا قَلِيلًا ۗ وَكُنَّا نَحْنُ

چي نۀ دي اوسيدلي پکښي | روستو دهغوئ نه | مګر ډير لږ | اويو مونږه | خاص هم مونږه |

چي د هغوی نه پس ډير کم اباد شوي دي | ............ اواخر هم مونږ ئي وارثان

الْوٰرِثِيْنَ ﴿۵۸﴾ وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى حَتّٰى يَبْعَثَ

وارثان | اونۀ دي رب ستا | هلاکونکي | دکلو | تر هغي پوري | چي اوليږي |

شو | ........اووائي زما محبوبه) ستارب تر هغي وخته پوري کلي نه تباه کوی ترڅو چي د هغي په مرکز

فِيْٓ اُمِّهَا رَسُوْلًا يَّتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا ۚ

په لوئ ښار (مرکز) دهغي کلو کښي | يو رسول | چي لولي | په هغوئ باندي| ايتونه زمونږ |

کښي څوک پيغمبر راونه ليږ ی | ..................چي زمونږ ايتونه ورته اولولي

وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرٰٓى اِلَّا وَاَهْلُهَا ظٰلِمُوْنَ ﴿۵۹﴾

اونۀ يو مونږه | هلاکونکي | دکلو | مګر هله | چي اوسيدونکي دهغي | ظالمان شی |

اومونږد يو کلي تباه کونکی نه يو| مګر په دي صورت کښي چي د هغي اوسيدونکی نافرمان وی

**قوله تعالی:-** وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا ۚ

**دسرکشانوکلی دعبرت نشانونه جوړشو:-** دمکي والوته خبرداري ورکړې کيږي، څوک چه دالله تعالی ډير نعمتونه حاصلولوسره غرورکوی اوسرکشی اوخانونه لوي ګڼري اودالله ﷻ نه کفرکولواونبی انکارئي کولو دالله تعالی روزی خوری اودهغۀ نمك حرامی کوی.هغوی الله ﷻ داسي تباه اوبرباد کړل چه نن د هغوی څوك دتپوس پوښتي واله نشته،په بل ايت کښي دی(وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً)الخ.دلته فرمائی چه ددوی وران کړي شوی کلی تراوسه پوري وران پراتۀ دی.څه لږي شان پکښي هسي ابادي شوي خو دی ليکن ددوی په کنډروباندي تراوسه پوري وحشت وريږی.صرف هم مونږ ددي مالکان پاتي شوي

**دسليمان ؑ يوي مرغئ سره مکالمه او دهغي جوابونه:-** يو،دحضرت کعب ؓ قول دي چه دالو (ګونګی، يوه مرغئ ده)نه حضرت سليمان ؑ تپوس اوکړوچه تۀ دپټی فصل ولي نه خوري؟هغۀ ورته اووئيل، ددي وجي نه چه حضرت ادم ؑ پري دجنت نه راويستي شوي وو،تپوس ئي تري اوکړوچه اوبۀ ولي نه څکي؟اخکه چه قوم نوح ؑ په دي کښي دوب کړي شوي وو.تپوس ئي تري اوکړوچه په ورانوکښي ولي اوسيږي؟وي وئيل ځکه چه دادالله تعالی ميراث دي.بياحضرت کعب ؓ(وكنا نحن الوارثين)اولوستلو.

**دخبرولو نه وړاندي الله ﷻ يوکلي هم نه تباه کوی** :بياالله ﷻ خپل عدل اوانصاف بيان فرمائی چه هغه څوك په ظلم سره نه هلاکوی،اول په هغوی خپل دليل ختم کړی.اودهغوی غذرلري کړی.اورسولان راواو ليږی اوترهغوی پوري خپل کلام رااورسوی.ددي ايت نه داهم معلوميږی چه دحضور ﷺ نبوت عام وو. او حضور ﷺ ام القری کښي مبعوث کړي شوي وو.اودتولوعربواوعجموطرف ته رسول راليږلي شوي وو. ځکه چه فرمان دي(وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا)چه تۀ دمکي والااودنوروښارونوواله اوويروي،بياني اوفرمائيل(قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا) اووانيه چه اي خلقوازۀ ستاسو تولوطرف ته دالله تعالی

رسول یمﷺ.په بل ایت کښې دی﴿لِأُنذِرَكُم بِهِۦ وَمَنۢ بَلَغَ﴾ چه په دې قران سره تاسو هم اوویروم اوهرهغه کس ترچاپورې چه داقران اورسی.په بل ایت کښې دی﴿وَمَن يَكْفُرْ بِهِۦ مِنَ ٱلْأَحْزَابِ فَٱلنَّارُ مَوْعِدُهُۥ﴾ددې قران سره په دنیاوالوکښې چه څوك هم کفراوکړی دهغهٔ دوعدې خانه ، جهنم دې.په بل ځائې کښې دالله ﷻ فرمان دی﴿وَإِن مِّن قَرْيَةٍ إِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوهَا﴾الخ.یعنی ټولوکلولره مونږ دقیامت نه مخکښې ورانونکی یو.یاسخت عذاب ورکونکی یو.الخ.پس خبرئې ورکړوچه دقیامت نه مخکښې به هغه ټول کلی بربادکړی.په بل ایت کښې دی چه مونږ ترڅو پورې رسول اونه لیږوعذاب نه ورکوو.پس دحضورﷺ بعثت ئې عام کړو اودټولوجهان دپاره ئې کړو، اوپه مکه کښې کومه چه دټولې دنیامرکزدې حضورﷺ ئې مبعوث اوفرمائیلو اوپه ټوله دنیائې خپل حجت ختم کړو.په بخاری اومسلم کښې د حضورﷺ ارشاد نقل دې چه زهٔ دټولوتوروسپینوطرف ته نبی رالیږلې شوې یم(۱)څکه ئې نبوت اورسالت په حضورﷺ باندې ختم کړو اودحضورﷺنه پس به ترقیامته پورې نه څوك نبی راشی اونه رسول.وئیلې شوې دی چه مراد د﴿أُمِّ الْقُرٰى﴾ نه اصل اولوې کلې دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَآ | أُوتِيتُم | مِّن شَىْءٍ | فَمَتَـٰعُ | ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا |
| او هغه چې | درکړې شوی دی تاسو ته | څه څیز | پس سامان دې | دژوند ددنیا |
| اوتاسو ته چې څه (نعمتونه) درکړې شوی دی \| هغه ددنیا د ژوند سامان دې \| او د دې زیب وزینت | | | | |
| وَزِينَتُهَا ۚ | وَمَا عِندَ ٱللَّهِ | خَيْرٌ | وَأَبْقَىٰٓ ۚ | |
| او ښائیست دې دهغې | اوهغه څه چې دالله سره دی | بهتر دی | او باقی پاتې کیدونکی دی | |
| دې \| .................... اوکوم نعمتونه چې الله ﷻ سره دی هغه ډیر ښه اوباقی پاتې کیدونکی دی | | | | |
| أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝ | أَفَمَن | وَعَدْنَـٰهُ | وَعْدًا حَسَنًا | |
| ایا نو عقل نهٔ چلوئ | ایا پس هغه څوك | چې وعده کړی وی مونږ دهغه سره | وعده نیکه (ښه) | |
| ایا تاسو خلق نه پوهیږئی ؟ ایا هغه څوك چې مونږ ورسره ښه وعده کړې وی (وعده د جنت) نو | | | | |
| فَهُوَ لَـٰقِيهِ | كَمَن | مَّتَّعْنَـٰهُ | مَتَـٰعَ | ٱلْحَيَوٰةِ |
| نودی موندونکې دهغې وی | ایشان دهغه چاکیدې شی | چې ورکړې وی مونږ هغه له | سامان | دژوند |
| هغه بدئې خامخا بیاموی \| نودې د هغه چا په شان کیدیشی چاته چې مونږ د دنیا د ژوند | | | | |
| ٱلدُّنْيَا | ثُمَّ | هُوَ | يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ | مِنَ ٱلْمُحْضَرِينَ ۝ |
| ددنیا | او بیا | هغه | په ورځ دقیامت | سزا ته دپیش کیدونکونه وی |
| سامان ورکړې وی\| او بیا به دقیامت په ورځ (ددوزخ) په حاضریدونکو کښې شامل وی\| | | | | |

قوله تعالی:- وَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَىْءٍ

دنیافانی اواخرت باقی پاتې کیدونکې دې -الله ﷻ ددنیادسپك والی په کښې دخوشحالودکم والی او ذلت او ددې ناپائیدارئ اوبې ثباتئ بدی بیان فرمائی،اوددې په مقابله کښې داخرت دنعمتونو پائیداری او همیش والې،عظمت اودوام ذکرفرمائی،ارشاددې﴿مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ وَمَا عِندَ ٱللَّهِ بَاقٍ﴾ستاسو سره چه څه دی

(۱) صحیح مسلم کتاب المساجد باب المساجدو مواضع الصلاة: ۵۲۹.

فنا کیدونکی دی،اوداللہ تعالی سره تول خیزونه دبقاواله دی،داللہ ﷻ سره چه څه دی هغه د نیکو خلقو دپاره ډیربهتراوعمده دی،اوداخرت په مقابله کښې دنیاخوهیڅ نه ده.لیکن افسوس چه خلق دنیا پسې لګیدلې دی،اوداخرت نه غافل دی.کوم چه ډیربهتراوډیرباقی پاتې کیدو واله دی.رسول اللہ ﷺ فرمائی ،دنیاداخرت په مقابله کښې داسې ده چه په تاسوکښې یوکس په سمندرکښې ګوته غوپه کړی اوراوباسی بیااوګوری چه دهغهٔ ګوتې پورې څومره اوبه نښتې وی ،هغهٔ دسمندرپه مقابله کښې څومره دی(١)افسوس چه په دې کښې هم ډیرخپلې کم عملۍ اوبې علمۍ په وجه ددنیالیونی دی.خیال اوکړئ یو هغه چه تهٔ په اللہ تعالی اودهغهٔ په نبیﷺباندې ایمان لرې اویوهغه چه ایمان نې نه راوړی نه وی دنتیجې په اعتبارسره برابرکیدې شی؟دایمان والوسره داللہ ﷻدجنت اودبې شمیره نهٔ ختمیدونکی اوغیرفانی نعمتونه وعده ده،اودکافرانوسره دهغهٔ خانې دعذاب ویره ده،اګرکه په دنیا کښې څه مزې اوکړی، روایت دې چه دادحضورﷺاودابوجهل لعنتی په باره کښې نازل شوې دې. (٢) یوقول داهم دې چه دحضرت حمزهؓ،حضرت علیؓ اوابوجهل په باره کښې داایت نازل شوې دې. (٣) ظاهره داده چه دا ایت عام دې،څنګه چه داللہ تعالی فرمان دې چه جنتی مومن به دخپل جنت ددرجونه جهنمی کافران د جهنم په جیل خانه اووینی نواوبه وانی ﴿وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّي لَكُنتُ مِنَ الْمُحْضَرِينَ﴾ کهٔ په مادخپل رب انعام نه وې نو زهٔ به هم په دې عذابونوکښې ګیرشوې وې.په بل ایت کښې دی،﴿وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ د پیریانو یقین دې چه حاضریدونکی والوکښې دی.

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ

اویادکړئ هغه ورځ چی هغه به آواز اوکړی هغوئ ته|اواوبه وانی ورته|کوم خانې دی|شریکان زما| هغه

او په هغه ورځ به ورته اللہ ﷻ آوازاوکړی | نو تپوس به اوکړی چې زما هغه شریکان څه شول

كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ۝ قَالَ الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ

چی وئ تاسو|چی ګمان به موبر کولو | اوبه وانی | هغه کسان | چی صحیح ثابتیږی|په هغوئ باندې

چې تاسو به شریک ګنړل | ..................نو هغه خلق به اووائی چې داللہ ﷻ د عذاب فیصله پرې

الْقَوْلُ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَغْوَيْنَا أَغْوَيْنَاهُمْ

داقول | اے ربه زمونږه | دادی هغه کسان | چی ګمراهه کړی وۀمونږه |ګمراهه کړل مونږ دوئ

ثابته شوې وی| . اثې زمونږه ربه ؛ دا هغه خلق دی کوم چې مونږه بې لارې کړی وو | څنګه چې مونږ

كَمَا غَوَيْنَا تَبَرَّأْنَا إِلَيْكَ مَا كَانُوا

لکه څنګه چی | ګمراهه شوی وۀ مونږه | ذمه وار نهٔ یو مونږ ددوئ | تاته | نهٔ وۀ دوئ

په خپله بې لارې وو دغه شان مونږدوئ بې لارې کړل | اوس مونږ ستاپه وړاندې ددوئ نه بیزاره یو

(١) صحیح مسلم کتاب الجنة باب فنا الدنیا وبیان الحشر یوم القیامة ۲۸۵۸،ترمذی:۲۳۲۲،ابن ماجه: ۴۱۰۸،ابـن حبـان: ۴۳۳،احمد:۲۲۸/۴.

(٢) الطبری: ۶۰۴/۱۹.

(٣) ایضًا: ۴۰۵/۱۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِيَّانَا | يَعْبُدُوْنَ | وَقِيْلَ | ادْعُوْا | شُرَكَآءَكُمْ |
| چې مونږ لره به ئې عبادت کوو | اواوبه ونيلې شي دوئ ته | چې رااوبلئ | | شريکان خپل |
| دوئ خوبه زمونږ عبادت نه کولو | ..........او (مشرکانو) ته به او وئيلې شي چې خپل شريکان راوبلئ | | | |
| فَدَعَوْهُمْ | فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا | لَهُمْ | وَرَاَوُا | الْعَذَابَ |
| نودوئ به رااوبلئ هغوئ | پس ورته به نۀ کړي جواب هغوئ | دوئ لره | اواوبۀ ويني دوئ | عذاب |
| نو دوئ به ئې راوبلي خوهغوئ به هيڅ جواب ورنکړي | اودوئ به (په خپلو سترګو) عذاب اووينې | | | |
| لَوْ اَنَّهُمْ كَانُوْا | يَهْتَدُوْنَ | وَيَوْمَ | يُنَادِيْهِمْ | |
| کاش چې دوئ وې | نيغه لار اختيارونکي | او ياده کړې هغه ورځ | چې آواز به اوکړي الله دوئ ته | |
| (دا به اووائي) کاش چې دوئ په سمه لار روان راغلي وې | اوپه کومه ورځ چې الله ﷻ دوئ راوغواړي | | | |
| فَيَقُوْلُ | مَاذَآ اَجَبْتُمُ | الْمُرْسَلِيْنَ | فَعَمِيَتْ | عَلَيْهِمُ |
| پس اوبه وائي | څه جواب ورکړې وو تاسو | رسولانو ته | پس پټ به شي | په هغوئ باندې |
| نو تپوس به ترې اوکړي | چې تاسو پيغمبرانو ته څه جواب ورکړې وو؟ | نو په دغه ورځ به د هغوئ | | |
| الْاَنْۢبَآءُ | يَوْمَئِذٍ | فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُوْنَ | | |
| خبرونه | په دغه ورځ (يعني جواب به ورنۀ کړي) | پس هغوئ به په خپلو کښې تپوس نشي کولې ديو بل نه | | |
| نه تول جوابونه هير شي | ..........او پخپل مينځ کښې به ديو بل نه تپوس هم نشي کولې | | | |
| فَاَمَّا | مَنْ | تَابَ | وَاٰمَنَ | وَعَمِلَ |
| پس هر چې دې | هغه څوک | چې توبه ئې اوويستله (نن) | او ايمان ئې راوړو | او عمل ئې اوکړو |
| خو چا چې توبه اوويستله | ..........او ايمان ئې راوړوا | او نيک عملونه | | |
| صَالِحًا | فَعَسٰۤى | اَنْ يَّكُوْنَ | مِنَ الْمُفْلِحِيْنَ | |
| نيک | پس کيدې شي | چې وي هغه | دکاميابو خلقو نه | |
| کوي | ..........نو کيدې شي چې دغه خلق کاميابه شي | | | |

**قوله تعالى:- وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ فَيَقُوْلُ**

**مشرک اودهغۀ معبوددالله ﷻ په وړاندې:-** مشرکان به دقيامت په ورځ رااوبللې شي اوالله ﷻ به ئې خپلې مخې ته اودروي اوورته به اوفرمائي چه په دنياکښې تاچه زمانه مقابله کښې دچاعبادت کولوکوم بتان او کاڼړي چه دې منل هغوئ چرته دي؟هغوي ته اوازاوکړه اواوګوره چه هغوي ستاڅه مدد کوي؟ياهغوي په خپله دخپل خان څه مددکولې شي؟دابه ورته صرف درټلوپه طورسره وي،څنګه چه فرمان دې.﴿وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ الايه يعني مونږ تاسوداسې يواځې يواځې اويوپه يو راوستئ څنګه چه مونږ تاسو په اول خل پيداکړې وئې،اوڅه چه مونږ تاسوته درکړې درسولې ووهغۀ هر څه تاسودخان نه روستو پريښودل،مونږ خونن تاسوسره څه سفارشي هم نه وينوکوم چه تاسودالله تعالى سره شريک ګرخولې وو.خوپه تاسواوهغوي کښې څه مينه پاتې نه شوه،اوستاسوګمان کړې شوې شريکان ټول

ستاسو نه نن ورك شوي دي.په چاچه دعذاب خبره ثابته شوې ده،يعني شيطانان،اوسركش خلق او د كفرمشران اوشرك طرف ته رابلونكي داټول لوی لوی خلق به په هغه ورځ اووائي چه دې الله مونږ دوی ګمراه كړي وو ،اودوی زمونږ كفريه خبرې واوريدلې اووې منلې ځنګه چه مونږ به لارې شوي وو، دوی هم مونږ بې لارې كړل،مونږ ددوی دعبادت نه ستاپه وړاندې دبيزارئ اظهاركوو،ځنګه چه په بل ايت كښې دی،﴿وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً﴾ الايه هغوی دالله تعالى نه علاوه نورمعبودان جوړكړل چه هغوی ددوی دپاره دعزت باعث جوړشي.خوداسې كيدونكی نه دی هغوی خوبه ددوی دعبادت نه هم انكار اوكړي، او التابه ددوی دشمنان جوړشي.په بل ايت كښې دی،﴿وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾الايه ددې نه زيات ګمراه به څوك وي؟چه دالله تعالى نه علاوه نوروته اوازونه كوي،چه ترقيامته پورې به دوی ته او ازور نكړي شي،اوهغوی ددوی د اوازونونه هم غافله دي.اودقيامت په ورځ دحشرپه موقعه باندې به ددوی دشمنانان جوړشي.اوددې خبرې نه به صفاانكاراوكړي چه هغوی ددوی عبادت كړي وو.ابراهيم عليه السلام خپل قوم ته فرمائيلي وو چه تاسودكوموبتانوعبادت شروع كړې دې دوی سره صرف ددنياددوستی ده، دقيامت په ورځ به تاسو ټول ديوبل نه منكرشئ،اوپه يوبل به لعنت وايئ الخ.په بل ايت كښې دی﴿اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا﴾ الايه يعني كوم چه تابعداری كونكي وو،هغوی دهغونه چاچه تابعداری كوله برى اوبيزاره به شي.عذاب مخامخ ليدوسره به ټول تعلقات ختم شي الخ.دوی ته به اوفرمائيلې شي چه تاسو په دنياكښې دچاعبادت كولونن هغوی ته اوازولې نه وركوئ؟اوس به دوی ورته چغې اووهی ليكن څه جواب به بيانه مومي.اودهغوی به يقين اوشي چه دوی به داورعذاب ته خي.هغه وخت به دوی ارمان كوی چه كاش دوی په نيغه لاره وي،ځنګه چه ارشاددې،﴿وَيَوْمَ يَقُوْلُ نَادُوْا شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ﴾ الايه،په كومه ورځ چه اوفرمائی چه زماهغه شريكانوته اوازاوكړه كوم چه تاديراوچت ګڼل،دوی به ورته اوازونه اوكړي،خوهغوی به هډوجواب ورنكړي.اومونږ به ددوی اودهغوی په ترمينځه پرده جوړه كړو،مجرمان خلق به دوزخ اووينې اوباوربه اوكړي،چه هغوی دې ته پريوتونكي دي.خودهغې نه دبچ كيدوڅه لاره به بيانه مومي.هم ددې قيامت په ورځ به دوی ټولوته واورولې شي اويوسوال به ترې اوكړې شي.چه تاسوپيغمبرانوته څه جواب وركړو؟اوتركومې پورې مودهغوی ملګرتيا اوكړه؟اول به د توحيدپه باره كښې تپوسونه اوكړې شي.اوس درسالت په باره سوال اوجواب كيږی.هم دغه شان په قبركښې هم سوال كيږی چه ستارب څوك دې؟مومن جواب وركوی،چه زمامعبودصرف الله تعالى دې. او زمارسول محمد ﷺ دې.چه دالله تعالى بنده اودهغه رسول دې.خودكافرنه به څه جواب جوړنه شي.هغه په ويره اوپريشانئ كښې وائي چاماته ددې پته نشته.ړونداوكونكرشي ځنګه چه ئې اوفرمائيل﴿وَمَنْ كَانَ فِيْ هٰذِهٖٓ اَعْمٰى فَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ اَعْمٰى﴾كوم كس چه دلته ړوندې هغه به هلته هم ړونداولاره به ترې وركه شوې وي.ټول دليلونه به دهغه دسترګونه اخواشي،چه رشتې،دوستئ نسب دهيڅ قدربه پاتې نه شي.دنسب نامو څه تپوس به نه وي.اوپه دنياكښې توبه ويستونكي اودايمان اونيكئ سره ژوندتيرونكي به بيشكه فلاح اوخلاصل كړي.دلته(عسى) ديقين په معنى كښې ده يعني مومن به ضرورکاميابيږي.

| | |
|---|---|
| وَرَبُّكَ | يَخْلُقُ |
| او رب ستا | پيدا كوي |
| .......... | وستارب چې څه غواړي |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا | يَشَآءُ | وَيَخْتَارُ | مَا كَانَ | لَهُمُ | الْخِيَرَةُ |
| هغه څه | چې غواړي ئې هغه | او غوره كوي ئې هغه | نه دي | دوئ لره | هيڅ اختيار(په دې كښې) |
| هغه پيدا كوي | .......... | وهم هغه غوره كوي(چې څوك اوغواړي) | | ددوئ هيڅ اختيار نشته | |

سُبْحٰنَ اللّٰهِ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ۝ وَرَبُّكَ يَعْلَمُ

پاکي دالله ده | او ډير اوچت دي | دهغې نه | چې دوئ ني ورسره شريکوي | او رب ستا | پوهيږي

الله ﷻ پاک دې | او ددوئ د شريکانو نه ډير اوچت دې | اوستا رب ته هغه ټول رازونه معلوم دي

مَا تُكِنُّ صُدُوْرُهُمْ وَمَا يُعْلِنُوْنَ۝ وَهُوَ اللّٰهُ

په هغه څه | چې پټوي ني | سينې دهغوئ | اوپه هغه څه | چې ښکاره کوي ني هغوئ | اوهم دغه الله دې

کوم چې د دوئ زړونه پټوي او کوم چې دوئ ښکاره کوی | ......................... او الله ﷻ هغه ذات دي

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۭ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْاُوْلٰى وَالْاٰخِرَةِ ۡ

چې نشته لائق دعبادت | مگر | هغه دي | هغه لره ثنا ده | په دنيا کښې | او په اخرت کښې

چې د هغه نه سوا بل څوک معبود نشته | په دنيا او اخرت دواړو کښې دهغه تعريف دي

وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ۝

او هغه لره حکم دي | او هغه ته به | تاسو واپس کيږئ |

او صرف د هغه حکم چليږي | اوتاسو به هم هغه ته واپس کيږئ

**قوله تعالى:- وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ ۭ**

**مختار کل دالله ﷻ ذات دي:-** دټول مخلوق خالق اوډټولو اختيارات والا الله ﷻ دي.نه پدې کښې د هغه سره څوک دجهګړې کولو والا نه دهغه شريك اوملګرې شته،څه چه اوغواړي پيداکوي څوک چه اوغواړي خپل خاص بنده ني جوړکړي.څه چه غواړي کيږي څه چه نه غواړي هيڅ کله کيدې نه شي.ټول کارونه اوټول خيراوشر دهغه په لاس کښې دي.دهرچا دهغه طرف ته واپس تلل دی دهيچاڅه اختيار نشته.هم دغه لفظ په دې ايت کښې په دې معنی﴿اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ۭ﴾کښې دې.په دواړو ځايونو کښې ما نافيه دې.اګرچه ابن جريرداوئيلي دی چه ماپه معنی د(الذي) دی.يعنی الله تعالی خوښوی هغه په چا کښې چه ښيګړه وی،اوهم دغه معنی اخستلوسره معتزلياتوپه مراعات صالحين باندې استدلال اوکړو،خوصحيح خبره داده چه دلته ما دنفی په معنی کښې ده،څنګه چه دابن عباس ﷺ او وغيره نه روايت دې چه داايت هم په دې بيان باندې دې چه دمخلوق په پيدائش کښې دتقديرمقررول اختيار لرلو والا رب تعالی يواځې دې.اودنظيرنه پاك دې.ددې وجې نه دايت په خاتمه باندې اوفرمائيل چه کوم بتان وغيره لره دوی درب شريك ګرځوی چه نه خوڅه څيزجوړکړی اونه اختياراولری الله تعالی ددې ټولونه پاك اوډيرلرې دې.

**قوله تعالى:- وَرَبُّكَ يَعْلَمُ**

بيانې اوفرمائيل چه په سينوکښې اوزړونوکښې پټوخبروباندې هم الله تعالی پوهيږي.اوهغه ټولې هم په هغه باندې داسې ظاهرې دی څنګه چه ښکاره اوظاهرې خبرې،په پټه خبرې اوکړې اوکه په ښکاره اووائې هغه په ټولوخبرداره دې.په شپه کښې اوپه ورځ کښې چه څه کيږی دهغه پټ نه دی.په الوهيت کښې هم هغه يواځې دې اودهغه نه سوابل څوك داسې نشته دچاطرف ته چه مخلوق خپل حاجتونه يوسی.اوچاته چه مخلوق عاجزی اوکړی.څوك چه دمخلوق حاجتونه پوره کونکې اومددکونکې وی.څوك چه دعبادت لائق وی.خالق مختار رب مالك هم هغه دې.هغه چه څه کوی ټول دستائينې قابل دی.دهغه عدل اوحکمت هم دهغه سره دې.دهغه حکمونه څوك ردکولې نه شي.هغه ارادې څوك روستو

کولې نه شي.هغهٔ به ټولوته دهغوی داعمالوبدله ورکوي دهغهٔ نه ستاسوهیڅ کارونه پټ نه دي. نیکانو ته جزااوبدانوته سزابه په هغه ورځ ورکوي اوپه خپل مخلوق کښې به فیصله اوکړي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | أَرَءَيْتُمْ | | | | | |
| اووایه | آیا وینئ تاسو(غور مو کړې دې) | | | | | |
| (دائي محبوبه ﷺ) ته دا اووایه | | | | | | |
| إِنْ جَعَلَ | اللَّهُ | عَلَيْكُمُ | الَّيْلَ | سَرْمَدًا | إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ | |
| که چرې جوړه کړي | الله | په تاسو باندې | شپه | همیشه | دورځې دقیامته پورې | |
| دا راته اوښائې که الله ﷻ په تاسو باندې همیشه ترقیامته پورې توره شپه راولي | | | | | | |
| مَنْ | إِلٰهٌ | غَيْرُ اللَّهِ | يَأْتِيكُمْ | بِضِيَاءٍ | أَفَلَا تَسْمَعُونَ | |
| نو څوك دې | بل خدائي | بغیر دالله نه | چې راوړي تاسو ته | رڼرا | آیا پس نهٔ اورئ تاسو | |
| نو دالله ﷻ نه سوابل څوک داسې معبود شته چې تاسو باندې رڼرا راولي | نو آیا تاسو نه آورئ | | | | | |
| قُلْ | أَرَءَيْتُمْ | إِنْ جَعَلَ اللَّهُ | عَلَيْكُمُ | النَّهَارَ | سَرْمَدًا | |
| اووایه | آیا سوچ کړې دې تاسو | که جوړه کړي الله | په تاسو باندې | ورځ | همیشه | |
| (محبوبه دا هم) ورته اووایه چې دا راته اوښائې که الله ﷻ په تاسو باندې همیشه تر قیامته پورې | | | | | | |
| إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ | مَنْ إِلٰهٌ | غَيْرُ اللَّهِ | يَأْتِيكُمْ | بِلَيْلٍ | | |
| دورځې دقیامته پورې | څوك دې بل خدائي | غیر دالله نه | چې راوړي (راولي) تاسو ته | شپه | | |
| ورځ راولي | نو د الله ﷻ نه سوا بل څوک معبود شته چې په تاسو شپه راولي | چې | | | | |
| تَسْكُنُونَ | فِيهِ | أَفَلَا تُبْصِرُونَ | وَمِنْ رَّحْمَتِهِ | جَعَلَ | | |
| چې ارام اوکړئ تاسوپه هغې کښې | آیا پس نهٔ وینئ تاسو | او درحمت خپل نه | جوړ کړل هغه | | | |
| تاسو په کښې ارام اوکړئ | نو ایا تاسو نه وینئ ؟ | ..............اوهغه په خپل رحمت سره | | | | |
| لَكُمُ | الَّيْلَ وَالنَّهَارَ | لِتَسْكُنُوا | فِيهِ | | | |
| ستاسو دپاره | شپه او ورځ | دپاره ددې چې تاسو ارام حاصل کړئ | په هغې کښې | | | |
| ستاسو دپاره شپه او ورځ دواړه پیدا کړې دي | چې تاسو د شپې ارام اوکړئ | او (دورځې) | | | | |
| وَلِتَبْتَغُوا | مِنْ فَضْلِهِ | وَلَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُونَ | | | |
| او دپاره ددې چې تاسو اولټوئ | دفضل دهغه نه | او دپاره ددې چې تاسو | شکر اوباسئ | | | |
| خان دپاره د هغه مقرره کړي روزي اولټوئي | ..................او چې د هغه (د نعمتونو) شکر اوباسئ | | | | | |

قوله تعالىٰ:- قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ جَعَلَ اللَّهُ عَلَيْكُمُ

دالله ﷻ دقدرت ناقابل تردید دلائل:-دالله ﷻ احسان ته اوګورئ چه ستاسودکوششونواوتدبیرنه بغیرشپه اوورځ برابرمخکښې روستوراروان دي.که همیشه شپه وې نوتاسوبه عاجزه شئ ستاسوکارونه به اودریږي په ژوندبه تاسوتنګ شئ تاسوبه ستړي شئ تنګ به شئ څوك به بیانه مومئ چه ستاسو دپاره ورځ رااوباسي.چه دهغې په رڼرا کښې تګ راتګ اوکړئ اوخپل کارروزګارپکښې اوکړئ. افسوس چه اورئ خوولې هیرې ئې کړئ.هم دغه شان که هغهٔ په تاسودهمیشه دپاره ورځ راولي نو ستاسوژوندونه

به تراخه شي.دبدن نظام به مووران ويجاړشي.ستړي به شئ،تنګ به شئ،هيڅوك نشته دچاسره چه دا قدرت وي چه هغه شپه راوستي شي.په کومه کښي چه تاسوارام اوکړي شئ، خو تاسو سترګي لري ولي دالله تعالى نخښي اومهربانوته نه ګورئ.داهم دهغهٔ احسان دي چه هغهٔ شپه اوورځ دواړه پيداکړي دي. چه دشپي تاسوارام حاصل کړئ اودورځي تاسوکاروزګاراوتجارت اوزراعت شغل اوکړئ،تاسوته پکاردي چه تاسودهغه حقيقي مالك اوقادرمطلق شکراداکړئ دشپي اوورځي عبادت کوئ دشپي قصورتلافي په ورځ کښي اودورځي دقصورتلافي په شپه کښي کوئ اودمختلف څيزونه دقدرت نموني دي اوددي دپاره دي چه تاسونصيحت اوعبرت حاصل کړئ اود رب شکراوکړئ

| وَيَوْمَ | يُنَادِيهِمْ | فَيَقُولُ | أَيْنَ | شُرَكَاءِيَ |
|---|---|---|---|---|
| او ياده ساتئ هغه ورځ | چي آواز به اوکړي الله دوئ ته | پس اوبه وائي | کوم خائي دي | شريکان زما |
| او په کومه ورځ چي به ورته الله ﷻ اعلان اوکړي | | ...........نو اوبه وائي چي اوس زما هغه | | |

| الَّذِينَ | كُنتُمْ | تَزْعُمُونَ ۞ | وَنَزَعْنَا | مِن كُلِّ أُمَّةٍ |
|---|---|---|---|---|
| هغه | چي وئ تاسو | چي تاسو به پر ګمان کولو | اورااوبه باسو مونږه | دهر امت نه |
| شريکان څه شول | چي تاسو به پري (د خدايانو) ګمان کولو | | اومونږ به د هر امت نه يو يو | |

| شَهِيدًا | فَقُلْنَا | هَاتُوا | بُرْهَانَكُمْ | فَعَلِمُوا |
|---|---|---|---|---|
| يو ګواه | نو اوبه وايو مونږه | راوړئ | دليل خپل | نو پوهه به شي هغوئ |
| ګواه بهرراوباسو | نوبيابه ورته اووايو چي اوس خپل خپل دليل پيش کړئ | | | نوهغوئ به پوهه شي |

| أَنَّ الْحَقَّ | لِلَّهِ | وَضَلَّ | عَنْهُم | مَّا | كَانُوا | يَفْتَرُونَ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چي بيشکه حق | الله لره دي | اوورك به شي | دهغوئ نه | هغه څه | چي وو هغوئ | چي دروغ به ئي جوړول |
| چي حقه خبره هم هغه وه | چي الله کړي وه | اوکومي دروغ خبري چي به دوی جوړولي هغه به تري هيري شي | | | | |

**قوله تعالى:- وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ**

**دقيامت په ورځ به دالله ﷻ شريکان په نظرنه راځي:-** مشرکان به په دويم ځل اورټلي شي اواوبه فرمائيلي شي چه په دنياکښي چه تاسوڅوك زماسره شريکان ګرځول هغوی چرته دي؟دهرامت نه يو ګواه يعني د هغه امت پيغمبربه خوښ کړي شي([1])اومشرکانوته به اووئيلي شي چه دخپل شريك څه دليل پيش کړئ. دغه وخت کښي به دوی يقين اوکړي چه واقعي دعبادتونولائق دالله تعالى نه سوابل څوك نه دي.هيڅ جواب به ورنکړي شي.حيران به پاتي شي اوټول دروغ به تري هيرشي.

| إِنَّ قَارُونَ | كَانَ | مِن قَوْمِ مُوسَىٰ | فَبَغَىٰ | عَلَيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| بيشکه قارون | وو | دقوم دموسی نه | پس سرکشئ اوکړه هغه | په هغوئ باندي |
| بيشکه قارون دموسی ؑ دقوم سړي وو | | خو دخپل قوم په مقابله ئي تکبر اختيار کړو | | |

| وَآتَيْنَاهُ | مِنَ الْكُنُوزِ | مَا | إِنَّ | مَفَاتِحَهُ |
|---|---|---|---|---|
| او ورکړي وي مونږ هغه ته | دخزانونه | هغه اندازه | چي بيشکه | کنجياني دهغي |
| اومونږ ورته دومره ډيري خزاني ورکړي وي | | چي د هغي کنجياني به د مضبوطو | | |

[1]) الطبری:۱۹/۶۱٤.

لَتَنُوٓأُ بِالْعُصْبَةِ أُولِي الْقُوَّةِ إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ

خامخا درنیدې | په داسې ډله باندې | چې خاوندان دقوت به وو | کله چې اووئیل | هغه ته | قوم دهغه

کسانو په پوره ډله باندې درنې وی | ......................... څه وخت چې د هغه قوم هغه ته اووئیل چې

لَا تَفْرَحْ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ ۝ وَابْتَغِ

خوشحالیږه مه (غرور مه کوه) | بیشکه الله | نه خوښوی | مغروره خلق | او تلاش کړه

غرور مه کوه | .........................یقینا مغروره کسان الله ﷻ نه خوښوی | او الله ﷻ چې تاته

فِيمَا آتَاكَ اللّٰهُ الدَّارَ الْآخِرَةَ وَلَا تَنْسَ نَصِيبَكَ

په هغه مال کښې | چې درکړې دې تاله الله | کور دآخرت | او مه هیروه | حصه خپله

کوم مالونه درکړی دی | په هغې کښې د آخرت دپاره څه عمل اوکړه|او ددنیا په مال کښې خپله حصه مه هیروه

مِنَ الدُّنْيَا وَأَحْسِنْ كَمَا أَحْسَنَ اللّٰهُ إِلَيْكَ وَلَا تَبْغِ

ددنیا نه | او احسان کوه | لکه څنګه چې | احسان کړې دې الله | ستا سره | اومه پورته کوه

.........................او لکه چې الله ﷻ تاسره احسان کړې دې، دغه شان ته هم دخلقو سره احسان کوه

الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ ۖ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ۝

فساد | په زمکه کښې | بیشکه الله | نه خوښوی | فساد کونکی

اوپه زمکه کښې فساد مه خوروه | بیشکه الله تعالی فسادیان نه خوښوی |

**قوله تعالى:- إِنَّ قَارُونَ كَانَ مِنْ قَوْمِ مُوسٰى فَبَغٰى عَلَيْهِمْ**

**قارون څوک او څه وو:-** روایت دې چه قارون دموسیؑ دتره خوې وو([1]) دهغه نسب دادې، قارون بن يصهرين قاهيث، اودموسیؑ نسب دادې موسیؑ بن عمران بن قاهیث([2]) دابن اسحاق m تحقیق دادې چه دې دحضرت موسیؑ تره وو، خواکثرعالمانونې دتره خوې وائی. دې ډیر خوش اوازه وو، او تورات به ئې په ډیرخوش اوازئ سره وئیلو، ددې وجې نه به ورته خلقو منور وئیلو، خوچه څنګه سامری د منافقت کارکړې ووداالله تعالی دشمن هم منافق شوې وو. چونکه ډیرزیات مالداروودې وجې نه پکښې غروروراغلې وو، اوالله تعالی ئې هیرکړې وو. په قوم کښې چه عام طورسره د کوم لباس دستور وو دهغه نه ئې یوه لیشت لاندې جامې جوړې کړې وې. چه دهغې سره دده غرور اومالداری ظاهره شی. دده سره دومره مال ووچه دده دخزانوپه چابیانواوچتولوباندې دطاقتورسړیوه ډله مقرروه، دده ډیر زیاتې خزانې وې. دهرخزانې چابی ئې جداوه، چه یوه لیشت به وه. کله چه به دا چابیانودده سره په قچرو باندې بارکړې شوې نوددې دپاره شپیتة قچرې مقرروی. والله اعلم.

**قوله تعالى:- قَالَ لَهُ قَوْمُهُ لَا تَفْرَحْ**

**د قوم نیکانو ته نصیحت:-** دقوم مشرانو اونیکانو خلقواوعالمانوچه کله دده سرکشی اوتکبردحدنه په زیاتیدو باندې اولیدونوده ته ئې نصیحت اوکړوچه دومره نیغږه مه اودومره غرورمه کوه اوداالله تعالی ناشکره مه جوړیږه کنی داالله تعالی دمحبت نه به لرې شې. دقوم وعظ کونکوورته اووئیل چه داالله ﷻ

[1]) الطبری:۶۱۶/۱۹.
[2]) ایضا: ۶۱۵/۱۹.

نعمتونه تاسرد دی دادالله تعالی درضامندئ په کارونوکښې خرچ کړه چه په اخرت کښې هم ستاحصه پیداشي مونږ درته دانه وائیوچه ته ددنیاعیش اوعشرت مه کوه بلکه ښه خوره څکه ښه اوغونده،ښه پسره وه،دجائزو نعمتونو فائده واخله ،نکاح اوکړه اوراحت اوچت کړه،حلال څیزونه استعمال کړه، خو چه چرته دخپل خان خیال ساتې نوهلته دمسکینانوهم خیال ساته،چرته چه خپل نفس نه هیروې هلته د الله ﷻحق هم مه هیروه چه ستادنفس هم په تاحق دې ستادمیلماهم په تاحق دې ستادبچوهم په تاحق دې اومسکین غریب هم تاسره په مال کښې حصه داردې.دهرحقدارحق اداکوه او څنګه چه الله تعالی تا سره سلوك کړې دې نوته دنوروسره سلوك اواحسان کوه خپله مفسدانه رویه بدله کړه دالله تعالی مخلوق ته تکلیف رسولونه منع شه ،الله تعالی فسادیانوسره محبت نه ساتي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ إِنَّمَآ | أُوتِيتُهُۥ | عَلَىٰ عِلْمٍ | عِندِىٓ ۚ | أَوَلَمْ يَعْلَمْ |
| اووئیل هغه بیشکه | راکړې شوې دې ماته دا مال | په وجه دهغه علم | چې زما سره دې | ایا اوهغه ته دا علم نه وو |
| قارون اووئیل چې دا مالونه خوماته زما د علم او(زما دقابلیت) په وجه راکړې شوې دی | | | | ایا هغه په دې پوهه نشو |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنَّ ٱللَّهَ | قَدْ أَهْلَكَ | مِن قَبْلِهِۦ | مِنَ ٱلْقُرُونِ | مَنْ | هُوَ |
| چې بیشکه الله | هلاك کړې دي | مخکښې دهغه نه | دخلقو نه | هغه څوك | چې هغه |
| چې الله ﷻ د هغه نه وړاندې داسې ډیر قومونه تباه کړې دی | | | چې هغوی د هغه (قارون) نه په زور | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَشَدُّ | مِنْهُ | قُوَّةً | وَأَكْثَرُ | جَمْعًا ۚ | وَلَا يُسْـَٔلُ |
| ډیر سخت وو | دهغه نه | په قوت کښې | او ډیر زیات وو | په ډله کښې | او تپوس به نه کیږي |
| کښې زیات وو | ...................... | اوډله پله (ملګرې) ئې ډیر زیات وو | | | او د مجرمانو نه به د ګناهونو په |

| | | |
|---|---|---|
| عَن ذُنُوبِهِمُ | | ٱلْمُجْرِمُونَ ۝ |
| په باره دګناهونو دهغوئ کښې | | دمجرمانونه |
| باره کښې تپوس ته هیڅ حاجت نه وی | | |

**قوله تعالی:- قَالَ إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِىٓ ۚ**

**دقارون متکبرانه جواب:**.دقوم دعالمانونصیحتونه اوریدوسره قارون چه کوم جواب ورکړودهغې ذکر کیږي.چه هغهٔ اوونیل تاسوخپل نصیحتونه دخپل خان سره کیږدئ.ماته ښه پته ده چه الله تعالی ماته څه راکړې دی هم دهغې زهٔ حقداروم.زهٔ یوعقلمنداوهوښیارکس یم.اوددې الله تعالی ته هم پته ده .ددې وجې نه هغهٔ دادولت ماته راکړې دې.دبعضې انسانانوداخاصه وی څنګه چه په قران کښې دی چه کله انسان ته څه تکلیف اورسی نوډیرپه عاجزئ سره اوازونه کوی اوکله چه مونږ هغهٔ ته څه راحت ورکړو نو وائی(قَالَ إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ عَلَىٰ عِلْمٍ)یعنی الله ﷻ ته پته وه چه زهٔ ددې حقداریم.ددې وجې هغهٔ داماته راکړی دی. په بل ایت کښې دی چه کهٔ مونږ په هغهٔ څه رحمت اوڅکواودهغې نه پس ورته څه مصیبت اورسی نو اووائی چه (هذالی)ددې حقدارخوهم زهٔ وم.

**قوله تعالی:- عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِىٓ ۚ**

**دقارون سره د څه علم وو؟**:بعضې خلقووئیلي دی چه قارون ته دعلم کیمیاپته وه،خوداقول بالکل کمزوری دې.بلکه دکیمیاعلم فی الواقع شته نه،څکه چه یوڅیزلره بعینه بدلول دادالله تعالی دقدرت خبره ده.چه په دې څوك بل څوك قادرنه دې.

فرمان الهي دې چه کهٔ ټول مخلوق راجمع شي نويو مچ هم پيدا کولې نه شي.په صحيح حديث کښې دي چه دالله ﷻ فرمان دې،دهغهٔ نه زيات ظالم څوك دې؟چه کوشش کوي چه زماپشان پيدائش اوکړی.کهٔ هغه رښتوني دې نويوه زره يايوه اوربشه دې جوړه کړي(۱)داحديث دهغوی په باره کښې دې چه تصو يرونه جوړوی اوصرف دظاهری صورت نقل کوي.ددوی دپاره ني خودااوفرمانيل بياچه څوك دعوی اوکړي چه هغهٔ ته کيميامعلومه ده اوديوڅيزبدل جوړلې شي ديوذات نه بل ذات جوړوی مثلاً داوسپني نه سرهٔ زروغيره نوصفاظاهره ده چه دابالکل دروغ دی.اوهيڅ کله کيدې نه شي.اوجهالت اوضلالت دې.اوداخبره بله ده که رنګ وغيره بدل کړي اودهوکه بازي اوکړي.خوپه حقيقت کښې دانامکنه ده. .داکيمياګرچه دروغژن جاهل اوفاسقان دی دوی صرف دعوې کوی او مخلوق په دهوکه کښې اچوي.خوداخيال ساتئ چه دبعضې اولياءالله دلاسه چه کوم کرامتونه ښکاره کيږی اوکله کله څيزونه بدل شي دهغهٔ مونږ ته انکارنشته.هغه دالله تعالی دطرف په هغوی يوخاص فضل وی اوهغه هم ددوی دوس خبره نه ده.نه ددوی په قبضه کښې وی اونه څه دکاريګرئ اوصنعت او علم دې هغه صرف دالله ﷻدفرمان نتيجه ده.چه الله تعالی دخپلوفرمانبرداره نيکانو بندګانو د لاسه خپل مخلوق ته ښائي. نو روايت دې چه حضرت حيوه بن شريح مصری رح ته يوخل يوسائل سوال اوکړو چه هغه سره هيڅ نه وو اودهغهٔ حاجتمندئ اوضرورت ته په کتوسره دوی په زړهٔ کښې ډيرزيات خفه شو،اخردوی دزمکې نه يوروکي کاڼې راوچت کړواولږ ساعت پورې ني په خپل لاس کښې اړولو راړلو اودفقيرپه جولئ کښې واچولونوهغهٔ دسروزروګيټې جوړشو.معجزې اوکرامات په حديثوکښې او اثارو کښې ډيرپه کثرت سره مروی دی.چه دهغې دلته بيانول به دخبرې اوږديدوباعث جوړ شي. د بعضو وينانده چه قارون ته اسم اعظم معلوم وو.چه دهغې په وئيلوسره دهغهٔ دخپل ځان دمالدارئ دعااوکړه.نودومره ډيردولت مند شو.دقارون ددې جواب په ردکښې الله تعالی فرمائي چه داغلطه ده چه زهٔ په چامهربانه شم نوهغه دولت مندکړم.نه ددې نه مخکښې ماددهٔ نه زيات دولت مندواومالداره خلق تباه کړي دی.نوداګڼړل چه مالداری زمادمحبت نخښنه ده بالکل غلطه ده.څوك چه زماشکرنه اداکوی اوپه کفرباندې قائم وی د هغهٔ انجام خراب وی.دګنهګارانودګناهونودزيات والي دوجې نه بيادهغوی نه ګناهونوسوال هم عبث وی.ددهٔ خيال ووچه په ماکښې خيردې.ددې وجې نه داداالله تعالی فضل په ماشوې دې.هغهٔ ته پته وه چه زهٔ ددې مالدارئ قابل يم که الله تعالی زمانه خوشحاله نه وې اوزهٔ ني ښه کس نه ګڼړلې نوماته به ني دانعمت نه وې راکړې.

| | | |
|---|---|---|
| | فَخَرَجَ | عَلٰى قَوْمِهٖ |
| | پس راووتو هغه | په قوم خپل باندې |
| نو (يوه ورځ) هغه خپل پوره شان وشوکت سره دخپل قوم په | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِىْ زِيْنَتِهٖ ط | قَالَ الَّذِيْنَ | يُرِيْدُوْنَ | الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا |
| په زينت (شان وشوکت) خپل کښې | نواووئيل هغه کسانو | چې غوښتو ني | دا ژوند ددنيا |
| مخکښې راووتلو ............ | نو کومو کسانو چې د دنيا اراده لرله هغوئ اووئيل چې | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰلَيْتَ | لَنَا | مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ | قَارُوْنُ لا | اِنَّهٗ | لَذُوْ |
| کاش چې وې مونږ لره | په شان دهغې | چې ورکړې شوې دی | قارون ته | بيشکه هغه | خاوند |
| کاش ! مونږ سره هم دغسې څيزونه موجود وې لکه څنګه چې قارون ته ورکړې شوې دی | | | | | يقينا دې |

۱) صحيح بخاری کتاب اللباس باب نقض الصور: ۵۹۵۳، صحيح مسلم :۲۱۱۱ مسندابی يعلی: ۶۰۸۶احمد:۲/۲۵۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حَظٍّ عَظِيْمٍ ﴿۷۹﴾ | وَقَالَ | الَّذِيْنَ | اُوْتُوا الْعِلْمَ | وَيْلَكُمْ |
| دحصې لوئ دې | اواووئيل | هغه كسانو | چې وركړې شوې وو علم | افسوس دې تاسولره |

خو د ډيرې برخې خاوند دې | او كوم كسان چې دعلم خاوندان وو (هغوئ) اووئيل چې ائې بد نصيبو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثَوَابُ اللّٰهِ | خَيْرٌ | لِّمَنْ | اٰمَنَ | وَعَمِلَ صَالِحًا |
| ثواب دالله | بهتر دې | دپاره دهغه چا | چې ايمان ئې راوړو | او عمل ئې اوكړو نيك |

د الله ﷻ ثواب د هغه كسانو دپاره ډير زيات غوره دې | كوم چا چې ايمان راوړی اونيک كارونه كوی

| | | |
|---|---|---|
| وَلَا يُلَقّٰهَآ | اِلَّا | الصّٰبِرُوْنَ ﴿۸۰﴾ |
| اونه وركړې كيږي دا | مگر | صبر كونكوته |

اودا خبره هغه چاته خودلې شي چې صبر كوی |

**قوله تعالى:- يٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ اُوْتِيَ قَارُوْنُ**

**دعيش عشرت سامان اوقارون اوددنياد پرستو تمنا**:قارون يوه ورځ ډيرې قيمتی جامې واغوستې او ډير په شان اوشوكت سره په ښه سورلئ سورشواوسره دخپلوغلامانوچه مخكښې اوروستوترې وو اوهغوی هم ډيرې بهترينې جامې اغوستې وې دې په ډيررعب داب كښې اوغروركښې اووتو،ددۀ داشان او شوكت اوټاپ ټاپ اودازينت اوښائست چه ددنياوالواوليدونودهغوی په خوله كښې اوبه راغلې،اووې وئيل چه ارمان مونږ سره هم ددۀ هومره مال وې دې خوډيرخوش نصيبه اوقسمت واله دې.

**قوله تعالى:- وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ**

**دنياپرستو ته د عالمانو نصيحت**:-عالمانوچه دهغوی داخبرې واورېدې نوهغوی ئې ددې خيال نه منع كول اوغوښتل اوهغوی ئې پوهه كړل چه اوگورئ الله ﷻ چه څه دمومن اونيكوبندگانودپاره دخپل خان سره تياركړی دی هغه ددې نه په كروړچنده ښه اوبهترين دی.تاسولره هغه درجات حاصلولودپاره دا دوو ورخوژوندپه صبرسره تيرول پكاردی.جنت دصابرانوحصه ده.مطلب داهم دې چه داقسمه پاكې كلمې دصبركونكوژبې نه اوځي.چه ددنيادمحبت نه لرې اوداخرت په محبت كښې غمژن وی.په دې صورت كښې ممكنه ده چه داخبرې دواعظ كونكونه وی بلكه په دې خبروكښې اوددې تعريف په تيره شوې جمله كښې دالله تعالى دطرف نه خبروی.

| | |
|---|---|
| فَخَسَفْنَا | بِهٖ |
| پس ډوب كړه (ننه ايستلو) مونږه | په دۀ باندې |

.................نو مونږ قارون اودهغه ماڼئ (دواړه)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَبِدَارِهِ | الْاَرْضَ | فَمَا كَانَ | لَهٗ | مِنْ فِئَةٍ | يَّنْصُرُوْنَهٗ |
| اوپه كور ددۀ باندې | په زمكه كښې | پس نه وه | هغه لره | هيڅ يوه ډله | چې امداد ئې كړې وې دهغه |

په زمكه كښې ورښخ كړل | نوبيا داسې يو ټولې نه وو چې د الله ﷻ په مقابله كښې ئې د هغۀ مدد

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | وَمَا كَانَ | مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ ﴿۸۱﴾ | وَاَصْبَحَ | الَّذِيْنَ |
| په مقابله دالله كښې | اونۀ شو هغه | په خپله دخان دمدد كونكونه | اوصباكړو (شوصباله) | اهغه كسان |

كړې وې | اونه هغه په خپله خپل خان بچ كړې شوا ............. اوصبا ته هغه خلقو اووئيل چې پرون

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَمَنَّوۡا | مَكَانَهٗ | بِالۡاَمۡسِ | يَقُوۡلُوۡنَ | وَيۡكَاَنَّ | |
| چې ارزونې کوله | دمر تبې دهغه | په پرون | هغوئ وائي (ئن) | افسوس دې اوس پوهه شو | |
| دهغه په شان جوړيدلو ارماني ووا رښتيا دي چې الله ﷻ په خپلو بندګانو کښې | | | | | |
| اللّٰهُ يَبۡسُطُ | الرِّزۡقَ | لِمَنۡ | يَّشَآءُ | مِنۡ عِبَادِهٖ | |
| چې الله فراښه کوي | رزق | دپاره دهغه چا | چې خوښه شي دهغه | دبندګانو خپلو نه | |
| چې د چا په باره کښې اوغواړي نو فراخه رزق ورته ورکوي \| او (چا ته چې اوغواړي) | | | | | |
| وَيَقۡدِرُ | لَوۡلَاۤ اَنۡ | مَّنَّ | اللّٰهُ | عَلَيۡنَا | |
| او په اندازه کوي رزق | که چرې نۀ وې دا | چې احسان اوکړو | الله | په مونږ باندې | |
| نو کموي \| ......................که چرې په مونږ باندې دالله ﷻ احسان نه وي \| نو مونږ به ئې | | | | | |
| لَخَسَفَ بِنَا ط | وَيۡكَاَنَّهٗ | لَا يُفۡلِحُ | | | |
| نو دغه به مونږ ورښخ کړي وو | افسوس دې اوس پوهه شو اچې فلاح(خلاصي)نۀ مومي | | | | |
| هم په زمکه ښخ کړي وو \| ......................رښتيا دي چې کافران نشي | | | | | |
| الۡكٰفِرُوۡنَ ۝ ع | | | | | |
| کافران \| | | | | | |
| کاميابيدې \| | | | | | |

**قوله تعالیٰ:- فَخَسَفۡنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الۡاَرۡضَ**

**دتکبرهمدغه سزاده**:-پورته دقارون دسرکشئ اوبې ايمانئ ذکراوشو،دلته دهغه انجام بيانيږي.په يو حديث کښې دی چه حضورﷺ اوفرمائيل،يوکس خپل ځان پسې څادرراښکواوپه فخرسره روان ووچه دغه په زمکه کښې ښخ کړې شو،چه دقيامته پورې به هم هغسې روان وی ښخيږي.(١) اواحمدپه روايت کښې دی چه په دوؤڅادرونوکښې په فخراوغرورسره راووتوچه الله تعالی زمکې ته حکم اوکړوچه دې الواق تيرکړه.

**يوه عجيبه واقعه**:- په کتاب العجائب کښې دی نوفل بن ماحق وائي چه دنجران په جومات کښې ما يو خوان اوليدوچه دډکې سينې واله،دخوانئ په نشه کښې مست،تندرست بدن واله،دډيرښکلي رنګ او صورت واله،چه نظربه پرې پريوتونوهم دهغه حسن اوجمال ته به تماشه شوې.نوهغه راته اووئيل چه تۀ څه ته ګورې؟ماورته اووئيل چه ستادحسن اوجمال ننداره کوم.اوډيرحيرانيږم،هغه راته جواب راکړوچه تۀ څۀ په خپله الله تعالی هم حيران دې،نوفل وائي چه دې کلمې وئيلوسره هغه په کميدوشواودهغه رنګ اوښائست په الوتوشو،اوقدئې په کميدوشو،تردې پورې چه يوه ليشت پاتې شو،چه خپل يونزدې رشته داريه لوستونړي کښې واچولواويويړو.

**دقارون دهلاکت سبب**:-داهم ذکردی چه دقارون هلاکت دحضرت موسیٰ عليه السلام په بد دعاسره شوې وو.ددې په سبب کښې ډيرزيات اختلاف دې.

---

(١) صحيح بخاری کتاب اللباس باب من الجرثوبه من الخيلاء: ٥٧٩٠. (بخاری)

**اول سبب** یوسبب خودابیانیږی چه قارون یوې بدکارې ښځې ته ډیرزیات مال دولت ورکړواوهغه ئې په دې راضي کړه چه عین په هغه وخت کښې کله چه حضرت موسی علیه السلام دبنی اسرائیلوپه مینځ کښې ولاړ وی اوخطبه ورکوی نوته ورشه اوورته اووانیه چه ته هم هغه ئې چه ماسره دې داسې داسې کړی وو. ښځې هم هغسې اوکړل،موسی علیه السلام اورپیدو،اوهم هغه وخت ئې دمونځ نیت اوتړلو،اودوه رکعته مونځ ئې اوکړواودهغې ښځې طرف ته متوجې شواووې فرمائیل چه ستادې په الله تعالی باندې قسم وی چا چه په اوبوکښې لاره راکړه،اوستاقوم ته ئې دفرعون دظلمونونه خلاصې ورکړواونورهم ډیراحسانات ئې اوکړل،نوچه څه رښتوني خبره وی هغه بیان کړه.داني چه واوریدل نودښځې رنګ بدل شواوصحیح واقعه دخلقوپه وړاندې بیان کړه،اوالله تعالی ته ئې استغفاراوکړو،اوپه رښتوني زړه سره ئې توبه ویسته.موسی علیه السلام بیاپه سجده پریوتو اودقارون دپاره ئې سزااوغوښته،دالله تعالی دطرف نه وحی راغله چه مازمکه ستاتابع کړې ده،دوی د سجدې نه سرراوچت کړو،اوزمکې ته حکم ورکړوچه ته دې اودهٔ مانړې خپلې خیټې ته دننه کړه. زمکې هم دغسې اوکړل،

**دویم سبب** :-دویم سبب دابیانیږی چه کله دقارون سورلئ په داسې شان اوشوکت سره راووته چه په سپین قچریاندې په قیمتی جاموکښې سوررو.دده غلامان هم په ریښمینوجاموکښې وو،اوحضرت موسی علیه السلام تقریرکولو،دبنی اسرائیل ټولکې وو،کله چه دې هغه څانې ته ورغی نودټولونظرپه ده اودهٔ په شان شوکت پریوتو.حضرت موسی علیه السلام چه کله دې اولیدونوتپوس ئې ترې اوکړوچه څنګه راوتې ئې؟ هغه ورته اووئیل چه خبره داده چه یوه خبره الله ﷻ تاته درکړې ده، اویوفضیلت ئې ماته راکړې دې.که تاسره نبوت دې نوماسره شان اوشوکت دې.که ستازماپه فضیلت کښې څه شك وی نوزه تیاریم چه زه او ته لاړشواوالله تعالی نه سوال اوکړواواوګوروچه الله تعالی د چا دعا قبلوی.حضرت موسی علیه السلام په دې خبره راضی شو،اودواړه لاړل.حضرت موسی علیه السلام ورته اوفرمائیل چه اول زه دعااوکړم یاته دعاکوې؟هغه ورته اووئیل چه نااول به زه دعاکوم.اوس هغه دعاغوښتل شروع کړل خوقبوله نه شوه.حضرت موسی علیه السلام ورته اوفرمائیل چه اوس زه دعاکوم.ده ورته اووئیل چه ښه ده اوغواړه.دوی الله ﷻ ته سوال اوکړو چه یاالله!زمکې ته حکم ورکړه چه څه ورته زه وائیم هغه منی.الله تعالی دده دعاقبوله کړه.اووحی راغله چه مازمکې ته ستاخبرې منلوحکم ورکړې دې.حضرت موسی علیه السلام چه داواوریدل نووې فرمائیل، اې زمکې دې اودهٔ ملګرې اونیسه،هم هغه څانې دې اودهٔ ملګری خښ شو،بیائې اوفرمائیل چه وې نیسه، دوی دځنګونوپورې خښ شو،حضرت موسی علیه السلام ورته اوفرمائیل چه نور ئې هم اونیسه،نودوی د نامهٔ پورې خښ شو.بیائې اوفرمائیل چه دده خزانې اومال هم دلته راوړئ ، هم هغه وخت دده ټولې خزانې اومال دولت راغې اوهغوی پخپلوسترګوهغه اولیدل بیاحضرت موسی علیه السلام خپل لاس سره اشاره اوکړه، ته دوی سره دخزانو نی دننه کړه،هم هغه وخت کښې دوی ټول برباد شو،اوزمکه چه مخکښې څنګه وه هم هغسې شوه،روایت دې چه تراوُومې زمکې پورې دوی هم هغسې خښ شو.داقول هم دې چه هره ورځ دوی دانسان دقدبرابرلاندې طرف ته ښښیږی. د قیامت پورې به دوی په دې عذاب کښې وی.دلته نورهم ډیربنی اسرائیلی روایتونه دی.خومونږ دهغې بیان پریښودې دې.نه خومال دهغوی په کار راغې اونه جاه وحشمت اودولت اوغروراوتکبردهغوی دمدددپاره راپاڅیدو،اونه ئې په خپله ځان بچ کړې شو.تباه شو،بې نشانه شو،وران اوورك کړی شو.هغه وخت دهغه خلقوسترګې هم پرانستې شوې چاچه دقارون مال اوادهغه عزت ته دلالچ په نظرسره کتل اوهغه ئې خوش نصیبه ګڼړلواویخ یخ اسویلی به کول،اورشك به ئې کولو،چه ارمان مونږ هم دومره دولتمندوې،هغوی ورته اووئیل چه اوس مواولیدل واقعی چه رښتیادی ،دولت مندکیدل دالله تعالی درضامندئ سبب نه دې.داخودالله تعالی حکمت دې چه چاته اوغواړی زیاته ورکړی اوچاته چه اوغواړی کمه ورکړی،په چاچه اوغواړی فراخی

راولي اوپه چاچه اوغواړي تنګي راولي.دهغۀ د حکمتونوهم هغۀ ته پته ده.په يوحديث کښې داهم دي چه الله تعالى په تاسوکښې داخلاق تقسيم هم دغسې کړې دې چه څنګه دروزئ،مال خودالله تعالى د طرف نه دهغۀ دوستانوته هم ملاويږي.اودهغۀ دشمنانوته هم.البته ايمان دالله تعالى دطرف نه هغۀ ته ملاويږي څوك چه الله تعالى اوغواړي(¹)دقارون دغه شان په زمکه کښې خښيدل چه هغوخلقواوليدل چاچه دهغۀ په شان دجوړيدواميدونه کول وې ونيل چه کۀ دالله تعالى لطف کرم اواحسان په مونږه باندې نه وې نوزمونږ ددې خواهش په بدله کښې کوم چه زمونږ په زړۀ کښې ووچه ارمان مونږ هم ددۀ په شان وې نونن به الله تعالى مونږ دهغۀ سره خښ کړې وو.هغۀ کافرونواوکافردالله تعالى په نزددفلاح لائق نه وي.نه هغوى ته په دنياکښې کاميابى ملاويږي اونۀ به په اخرت کښې خلاصې بياموعي.

د «وَيْكَاَنَّ» تحقيق:-نحوى وائي«ويكان» معنى «ويلك اعلم ان» ده،خومخفف کړې نې ده او«ويك» پاتې شوه، او ددې دکاف دفتحه سره «اعلم» په مخذوف کيدوباندې دلالت کوي.خودې قول ته ابن جريرضعيف وئيلي دې.خوزۀ وائيم چه داضعيف ونيل ورته ټيك نه دى.په قران کريم کښې ددې دکتابت په يوځائې کيدل ددې دضعيف کيدووجه جوړيدې نه شي.څکه چه دکتابت طريقه خواختراعى امردې چه رواج نې بيا مونداواومعتبراوګڼرلې شو.دې سره په معنى څه اثرنه پريوځي.والله اعلم.دويمه معنى ددې «الم ترا ن» کړې شوې ده.اوداهم وئيلې شوى دى چه داهم دغه شان دوه لفظه دى.«وى» او«كان» حرف «وى» دتعجب دپاره ده يادخبردارئ دپاره او«كان» معنى کښې اظن دپاره دى.په دې ټولو قولونو کښې قوى قول دادې چه داپه معنى کښې«الم تر»دپاره ده،يعنى تااونه ليدل څنګه چه دقتاده m قول دې هم دغه معنى په عربي شعرکښې هم ترې مرادده.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تِلْكَ | الدَّارُ | الْاٰخِرَةُ | نَجْعَلُهَا | لِلَّذِيْنَ |
| دا | کور | اخرى | مقرر وۀ مونږ | دپاره دهغه خلقو |
| دا د اخرت کورمونږ هغه خلقو دپاره تيار کړې دې | | | | |
| لَا يُرِيْدُوْنَ | عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ | وَلَا فَسَادًا | وَالْعَاقِبَةُ | لِلْمُتَّقِيْنَ ۝ |
| چې نۀ غواړي | لوئي په زمکه کښې | اونۀ فساد | او بنۀ انجام | دپاره دپرهيزګارانو دي |
| چې په زمکه کښې تکبر او فساد کول نه غواړي ............ اواخرت خو دپرهيزګارانو دپاره بنه دې | | | | |
| مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ | فَلَهٗ | خَيْرٌ مِّنْهَا | وَمَنْ | جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ |
| چاچې اوکړه نيکي | نوهغه لره ده | بهتره دهغې نه | او چاچې | اوکړه بدي |
| چا چې دالله ﷻ دربار ته نيکي راوړه نو هغه ته به د هغې نه غوره بدله ورکولې شي | | | | |
| فَلَا يُجْزَى | الَّذِيْنَ | عَمِلُوا السَّيِّاٰتِ | اِلَّا | مَا كَانُوْا |
| نوبدله به نۀ ورکړې کيږي هغه کسانوته | چې کوي | بدکارونه | مګر | هغه چې وۀ هغوئ |
| اوچا چې خان سره بدي راوړه نو بدکارو کسانو ته فقط هغه هومره بدله ورکولې شي | | | | |
| يَعْمَلُوْنَ ۝ | | | | |
| چې کول به ئې | | | | |
| خومره چې هغوئ کول | | | | |

¹) احمد: ۱/۳۸۷.

**قوله تعالى:- تِلْكَ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ**

**په پرهیزګاروباندې دانعام تذکره:-** فرمائي چه دجنت اواخرت نعمت به صرف هغۀ ته ملاویږي دچا زړونو چه دالله ﷻ دویرې نه ډك وي.اوددنیاژوندپه عاجزئ اواخلاقوسره تیرکړي.خپل ځان دچانه اوچت اولوی اونه ګڼري.اواخوادیخوافسادنه خوروی اوسرکشي اوفسادنه کوی.اودچامال په ناحقه نه خوري. د رب په زمکه درب نافرماني نه کوی.دحضرت علي﷛نه نقل دی چه دچاداخبره خوښه شي چه دهغۀ د څپلې تسمه دهغۀ دملګری دتسمې نه ښه وی نوهغۀ هم په دې ایت کښې داخل دې. ([1])

**قوله تعالى:- عُلُوًّا فِي الْاَرْضِ وَلَا فَسَادًا ط**

**ښائسته بدې نه دې خو چې تکبرپه کښې نه وی:-** ددې نه مراددادې چه کله هغه فخراوغروراوکړي، کۀ صرف دښائست دپاره غواړي نوځه نقصان پکښې نشته،ځنګه چه دصحیح حدیث نه ثابته ده چه یو کس اووئیل یارسول الله ازماخوداخواهش وی چه زما ځادرهم ښه وی اوزماځپلئ هم ښه وی نوایادا هم تکبردې.حضورﷺورته اوفرمائیل،نه داخوښائست دې،الله تعالى جمیل دې اوجمال خوښوی([2])بیائې اوفرمائیل چه څوك زمونږ خواته نیکي راوړي هغۀ به د ډیرنیکوثواب بیاموسي دامقام فضل دې، او د بدئ بدله صرف هم دهغې په شان سزاده دامقام عدل دې.په بل ایت کښې دی ﴿وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوْهُهُمْ فِي النَّارِ ط﴾ څوك چه به ځان سره بدی راوړي هغه به پړمخ اورته ځي .تاسوته به هم هغه بدله درکړې شي څه چه تاسوکول.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْ | فَرَضَ | عَلَيْكَ | الْقُرْاٰنَ | |
| بیشکه هغه ذات | چې فرض کړي نی دي | په تاباندي | دا قرآن | |
| ایقینا هغه الله ﷻ چا چې په تاباندې دقرآن پاك(حکمونه او عمل) فرض کړې دي | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَرَآدُّكَ | اِلٰى مَعَادٍ ط | قُلْ | رَّبِّيْٓ | اَعْلَمُ | مَنْ | |
| خامخا واپس بوتلونکي دي تالره | ځاني دوعدې ته | اووایه | رب زما | ښه پوهیږي | په هغه چا | |
| هغه به خامخا تا (اصلي) مقام ته واپس کرځوي(انې محبوبه) ته ورته اووایه چې زما رب هغه څوك | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| جَآءَ بِالْهُدٰى | وَمَنْ | هُوَ | فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ | وَمَا كُنْتَ | | |
| چي راغلی نی کړي دی په هدایت | اوپه هغه چا | چې هغه | په ګمراهئ ښکاره کښي دي | اونۀ وې تۀ | | |
| ښه پیژني چې رښتوني دین نې راوړې دې | اوڅوك چې په ښکاره ګمراهئ کښې پروت دې | اوستا خو | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَرْجُوْٓا | اَنْ يُّلْقٰٓى | اِلَيْكَ | الْكِتٰبُ | اِلَّا | رَحْمَةً | |
| چې امیدلرلو | چې رااوبه لیږلې شي | تاته | کتاب | مګر | رحمت دي | |
| داامید نه وو چې داکتاب به درباندې نازل شي | دا خو صرف ستا د رب | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ رَّبِّكَ | فَلَا تَكُوْنَنَّ | ظَهِيْرًا | لِّلْكٰفِرِيْنَ | وَلَا يَصُدُّنَّكَ | | |
| دطرفه درب ستانه | پس مۀ کیږه تۀ | مددګار | دپاره دکافرانو | اومنع نۀ کړي تا(کافران) | | |
| رحمت وو | نو ته کله هم د دې کافرانو مرسته مه کوه | ............ | اوکله چې تاته د الله ﷻ | | | |

---

[1]) الطبری: ۶۳۸/۱۹.

[2]) صحیح مسلم کتاب الایمان باب تحریم الکبر وبیانه:۹۱، ترمذی:۱۹۹۹، احمد:۴۵۱/۱.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ | بَعْدَ | اِذْ | اُنْزِلَتْ | اِلَيْكَ | وَادْعُ | اِلٰى رَبِّكَ |
| دآیتونو دالله نه | روستو ددې نه | چې کله | نازل شي | تاته | او دعوت ورکوه | طرف درب خپل ته |

حکمونه راورسیدل | نو خیال ساته چې دوئ دې ترې منع نکړې شي | اودخپل رب طرفته بلنه کوه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تَكُوْنَنَّ | مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿٨٧﴾ | وَلَا تَدْعُ | مَعَ اللّٰهِ | اِلٰهًا اٰخَرَ |
| اومه کیږه ته | دمشرکانو نه | اومه رابله | دالله سره | معبود بل |

اوپه مشرکانو کښې مه شاملیږه | ............. اودالله ﷻ سره بل معبود (په خپل عبادت کښې) مه رابله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَآ اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ | كُلُّ شَيْءٍ | هَالِكٌ | اِلَّا | وَجْهَهٗ |
| نشته دې لائق دعبادت | مګر | هم هغه دې | هر څیز | هلاکیدونکي دې | مګر نه | مخ دهغه |

دهغه نه سوا بل معبود نشته | ............دهغه نه سوا هر څیز فناکیدونکي دې |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَهُ | الْحُكْمُ | وَاِلَيْهِ | تُرْجَعُوْنَ ﴿٨٨﴾ |
| هغه لره بادشاهي ده | | او خاص هم هغه ته به | تاسو واپس کیږئ |

صرف دهغه حکم چلیږی | اوتاسو ټول به ورته خامخا واپس کیږئ

**قوله تعالی:- اِنَّ الَّذِیْ فَرَضَ**

**دحشرپه میدان کښې به سوال کیږی**:الله تعالی خپل نبیﷺته حکم فرمائی چه درسالت تبلیغ کوه،او خلقوته دالله ﷻ کلام اوروه،الله تعالی تالره دقیامت طرف ته واپس بوتلونکې ني،اوهلته به دنبوت په باره کښې تپوس کیږی.څنګه چه فرمان دې.﴿فَلَنَسْئَلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ وَلَنَسْئَلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ یعني د امتونو نه اودرسولانوټولونه به مونږ تپوس کوو.په بل ایت کښې دی چه رسولان به راجمع کړی اوالله ﷻ به ترې تپوس اوکړی چه تاسوته څه جواب درکړې شو؟په بل ایت کښې دی چه نبیان اوګواهان به راوستې شی

**قوله تعالی:-مَعَادٍ**

**دمَعَادٍمعنی اومطلب**:-دمعادنه مرادجنت هم کیدې شی.مرګ هم کیدې شی،دوباره ژوندهم کیدې شې.چه په دویم خل ژوندی شی اوجنت ته داخل شی.په صحیح بخاری کښې دی چه ددې مرادمکه ده. (۱)
دمجاهد نه روایت دې چه ددې نه مرادمکه مکرمه ده،کوم چه دحضورﷺدپیدائش ځائې دې. (۲)
ضحاکﷺ فرمائی چه حضورﷺکله دمکې نه اووتو،لاپه حجفه کښې وو،چه دحضورﷺپه زړه کښې د مکې شوق پیداشو،پس داایت نازل شو.اوحضورﷺسره وعده اوشوه چه واپس به مومکې مکرمې ته رسوو،ددې نه داهم معلومیږی چه دا ایت مدنی وی.حالانکه پوره سورت مکی دې.داهم ونیلې شوی دی چه ددې نه مرادبیت المقدس دې.کیدې شی چه دونیونکی غرض ددې نه هم دقیامت وی.څکه چه بیت المقدس دمحشرزمکه ده.ددې ټولوقولونودجمعې کولوصورت دادې چه حضرت ابن عباسﷺکله ددې تفسیردحضورﷺمکې ته واپس دراتلوچه دمکې دفتح کیدوپه وخت پوره شو او دا د حضورﷺ د عمر دپوره کیدویوزبردست علامت وو.څنګه چه دوی دسورت ﴿اذاجاء﴾په تفسیرکښې اوفرمائیلو،دکوم چه حضرت عمرهم موافقت کړې دې.اوفرمائیلې ني ووچه څه تاته معلوم دی هغه ماته هم معلوم دی.هم دغه وجه ده چه هم ددۀ نه دې ایت سره چرته چه مکه روایت ده هم هلته دحضورﷺانتقال هم مروی دې.اوکله قیامت سره تفسیراوکړوځکه چه دمرګ نه پس قیامت دې.اوکله دجنت سره تفسیر اوکړوچه د

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة القصص باب (ان الذین فرض علیك القران) :۴۷۷۴.
(۲) الطبری:۱۹/۶٤۱.

حضورﷺداوسيدوخاني دي.او د حضورﷺ دتبليغ اورسالت بدله ده.چه حضورﷺ انسانانو او پيريانو ته د الله تعالى ددين دعوت ورکړو،اوحضورﷺدتمام مخلوق نه زيات کامل زيات فصيح او زيات افضل وو. بياني اوفرمائيل چه خپلومخالفينواونه منونکوته اووائيه چه په مونږ کښې دهدايت واله اوګمراهي والا الله ﷻ ښه پيژني.تاسوبه اووينئ چه انجام چاته بهترملاويږي.اوپه دنيااواخرت کښې بهتري اوښيګړه دچاپه حصه کښې راځي.

**قوله تعالى:- وَمَا كُنتَ تَرْجُوٓا۟**

**ديو بل غټ نعمت بيان**:-بياخپل يوزبردست نعمت بيان فرمائي چه دوحي نه نازليدونه مخکښې ستا به چرې په خيال کښې هم نه راتلل چه په تابه دالله کتاب نازليږي.داخوپه تااوپه ټول مخلوق دالله تعالى رحمت اوشوچه هغهٔ په تاخپل پاك اوافضل کتاب نازل کړو.اوس تالره هيڅ کله دکافران مددګارکيدل پکارنه دي.بلکه دهغوی نه بيليدل پکاردي.اودهغوی نه بې زاری ښکاره کول پکاردي.اودهغوی نه دمخالفت اعلان کول پکاردي.بياني فرمائيلي دی چه دالله تعالى دنازل کړې شوې ايتونونه داخلق چرته تامنع نه کړي،يعنې داچه دوی ستاددين مخالفت کوی اوخلق ستادتابعداری نه منع کوی نو د دوی هيڅ قسمه اثرمه اخله،په خپل کارکښې لګيااوسه،اللهﷻ ستاکلمې لره پوره کولوواله دې .ستا د دين مددکولوواله دې،ستارسالت لره غالب کولوواله دې.په ټولودينونوباندې ستادين لره اوچتولوواله دې.ته دخپل رب دعبادت طرف ته خلق رابله،کوم چه يواځې اولاشريك دې.تاته نه دی پکارچه ته د مشرکان ملګرتيااوکړې،دالله تعالى سره بل چاته اوازمه کوه دعبادت لائق هم هغه دې.دالوهيت قابل هم دهغهٔ عظيم الشان ذات دې.هم هغه دائم اوباقي دې.حي وقيوم دې،ټول مخلوقات به مړهٔ شی اوهغهٔ دمرګ نه لرې دې.څنګه چه نې اوفرمائيل ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ﴾ هرڅه چه په دې باندې دی فاني دی.ستادرب مخ به باقی پاتې شی.کوم چه دجلالت او کرامت واله دې.

**قوله تعالى:- إِلَّا وَجْهَهُۥ**

**د(وَجْهَهُ) مطلب**:-دوجه نه مرادذات دې.رسول اللهﷺفرماني چه دټولونه زيات رښتوني کلمه د لبيد شاعر ده چه هغهٔ وئيلي وه،(الاكل شئ ما خلاالله باطل)يادلرئ درب تعالى نه سواهرڅه باطل دی([1]) دمجاهدm او ثوری رح ته روايت دې چه هرڅيزباطل دې.مګرهغه کارچه دالله تعالى درضامندئ دپاره اوکړې شی د هغې ثواب پاتې شی.دشاعرانوپه شعرونوکښې هم دوجه لفظ ددې مطلب دپاره استعمال شوې دې اوګورئ:

**استغفرالله ذنبالست محصيه ............رب العبادالیه الوجه والعمل.**

زهٔ دالله تعالى نه چه دټولوبندګانورب دې دچاطرف ته چه توجواوقصددې دچادپاره چه عمل دې د خپلو ټولوګناهونوبخښش غوارم.کوم چه زهٔ شميرلې نه شم.داقول دمخکيني قول خلاف نه دې داپه خپل ځانې صحيح دې چه دانسان ټول اعمال بربادی صرف هم ددې نيکوبدلې مستحق دې.کوم چه صرف دالله تعالى درضاحاصلولودپاره وی.اوداولني قول مطلب هم بالکل صحيح دې چه ټول ساه لرونکی فانی اوختميدونکی دی.صرف دالله تعالى ذات پاك دې چه دفنااوزوال نه اوچت دې .هم هغه اول اوهم هغه اخردې هم دځيزنه مخکښې وواوهرڅيزنه پس به وی.روايت دې چه کله ابن عمرﷺ به خپل زړ مضبوطول غوښتل نوپه څنګل به چرته ديوکنډرپه دروازه کښې اودريدواوپه درناك اواز سره به نې وئيل چه ددې جوړونکی چرته دی؟بيابه نې په خپله په جواب کښې داايت لوستلو.حکم ،ملك او ملکيت هم دهغهٔ دې مالك اومتصرف هم هغه دې.دهغهٔ حکم څوك ردکولې نه شی.دقيامت په ورځ به

---

[1]) صحيح بخاری کتاب الادب باب ما يجوز من الشعراء والرجز والحداء وما يكره منه:٦١٤٧، صحيح مسلم:٢٢٥٦.

ټول دهغهٔ طرف ته واپس څي،هغهٔ به ټولوته دهغوی دنیکئ بدله ورکوی نیك ته دنیکئ بدله اوبدته د بدئ سزا.الحمدلله،دسوره قصص تفسیرختم شو.

| آیاتونه | | سورة العنكبوت مكية وهي تسع وستون آية وسبع ركوعات | | ركوع ګاڼې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۶۹ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۷ |

الٓمّٓ ۝۱ أَحَسِبَ النَّاسُ أَنْ يُّتْرَكُوْا أَنْ يَّقُوْلُوْا

الف . لام . میم | آیا ګمان اوکړو | خلقو | چې پرې به ښودې شی دوئ | چې اوبه وائی دوئ |

الف لام میم| آیا خلق دا ګمان کوی| چې دوی صرف دا اووائی چې مونږ ایمان راوړې دې نو داسې به

اٰمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُوْنَ ۝ وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِيْنَ

چې ایمان راوړو مونږه | او دوئ به | اونهٔ آزمائیلې شی | حالانکه آزمائیلی وو مونږه | هغه کسان

پریخودې شی او څهٔ امتحان به پرې نشی کولې!.......................اومونږ د دوي نه په مخکنو

مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا

چې مخکښې ددوئ نه ووُ | پس ضرور به معلوموی | الله | هغه کسان | چې رښتینی دی

خلقوهم امتحان کړې وو|نو الله به ضرورهغه کسان ښکاره کوی چه د ایمان په دعوی کښې رښتونی دی

وَلَيَعْلَمَنَّ الْكٰذِبِيْنَ ۝ أَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ

او خامخا به معلوموی | دروغژنان خلق | آیا ګمان اوکړو | هغه کسانو | چې کوی کارونه |

او ضرور به دروغژن هم ښکاره کوی|.......... آیا کوم خلق چې ګناهونه کوی د هغوی دا خیال دې

السَّيِّاٰتِ أَنْ يَّسْبِقُوْنَا ط سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ۝

بد | چې ګنی وړاندې به شی هغوئ زمونږ نه | ډیربد دې | هغه حکم | چې کوی نې هغوئ |

چې زمونږ نه بچ شی (او مونږ به ورته سزا ورنکړو) | دوی (زما د قدرت په باره کښې) ډیره غلطه اندازه لګوی

**قوله تعالى:- أَحَسِبَ النَّاسُ أَنْ يُّتْرَكُوْا**

**دومن خوبه اوس لاامتحان وی:**-دحروف مقطعه بحث په سوره بقره کښې تیرشوې دې.بیافرمائی چه دا ناممکنه ده چه مومن دامتحان نه پریښودې شی.په صحیح حدیث کښې دی چه دټولونه سخت امتحان دنبیانووی. بیاد صالحواونیکوخلقو،بیادهغوی نه دکمې درجې واله،اوبیادهغوی نه هم دکمې درجې والاانسان امتحان دهغهٔ ددین داندازې مطابق وی.کهٔ په دین باندې سخت وی نو مصیبتونه هم سخت نازلیږی[1] هم ددې مضمون بیان په دې ایت کښې دې.﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ﴾ آیاتاسوداګمان کړې دې چه تاسوبه پریښودې شئ حالانکه لاتر اوسه پورې الله تعالی دا ظاهرکړې نه دی چه په تاسوکښې مجاهد څوك دې؟اوصابرڅوك دې؟هم دغه شان په سوره التوبه او سوره بقره کښې تیرشوی دی.چه آیا تاسو دا سوچ کړې دې چه تاسوبه جنت ته هم دغسې لاړ شئ؟اودمخکینوخلقوپه شان سخت امتحانونه به په تاسونه راځی.چه هغوی ته لوږه دردوغیره

[1] ترمذی کتاب الزهد باب ماجاء فی الصبر علی البلاء: ۲۲۹۸ وهو حسن، ابن ماجه: ۴۰۲۳، احمد: ۱۷۲/۱،حاکم: ۴۱/۱.

اورسیدو تردې پورې چه رسول اودهغهٔ ایمان دارو ملګرو اوونیل چه دالله تعالی مددچرته دې؟یقین اولرئ چه دالله تعالی مددنزدې دې.دلته ته نې هم اوفرمائیل چه ددې نه د مخکینو مسلمانانو هم جانچ پړتال شوې وو، په هغوی هم دسختواومصیبتونومزه اوڅکلې شوه تاکه چه په هغوی کښې کوم په خپله وعده کښې ربښتونې دی اوهغه چه صرف زبانی دعوی کونکی دی په هغې کښې فرق اوکړې شي.اوهغهٔ دااونه ګڼړی چه الله تعالی هغه پیژندلې نه دې، هغه هره شوې خبره اوهره کیدونکې خبره باندې خبردار دې.

**قوله‌تعالی:-فَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ**

**دلته علم په معنی د لیدلو دې**:په دې باندې داهل سنت دټولوامامانواجماع ده .پس دلته علم رویت یعنی دکتومعنه ده،حضرت ابن عباس‌رضی‌الله‌عنه(لنعلم)معنی په للرٰی سره کوی،ځکه چه دلیدوتعلق دموجوده څیزونه سره وی.اوعلم ددې نه عام دې.بیافرمائی چه چاایمان نه دې راوړې هغوی دې داګمان هم نه کوی چه هغوی به دامتحان نه بچ شی لوئ لوئ عذابونه اوسختې سزاګانې دهغوی په تکل کښې دی.دوی زمونږ دلاس نه وتې نه شی.زمونږ نه مخکښې تلې نه شی،ددوی داګمان ډیر بد دې دکوم نتیجه چه به ډیره زراووینی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | كَانَ يَرْجُوْا | لِقَآءَ اللّٰهِ | فَاِنَّ | اَجَلَ اللّٰهِ | لَاٰتٍ ؕ |
| هغه څوك | چې امید لری | دملاقات دالله | نو بیشکه | نیته دملاقات دالله | خامخا راتلونکی ده |
| څوک چې دالله جل جلاله سره د ملاقات امید ساتی اِنو د الله جل جلاله مقرر شوې نیته خامخا راتلونکې ده | | | | | |
| وَهُوَ | السَّمِيْعُ | الْعَلِيْمُ ۝ | وَمَنْ جَاهَدَ | فَاِنَّمَا | |
| او هغه | هر څه اوریدونکې | او په هر څه پوهه دې | او چاچې محنت اوکړو | پس بیشکه | |
| اوهغه د هر څه اوریدونکې او لیدونکې دې \| اوڅوک چې (د الله په تابعداریٔ کښې) کوشش کوی نو | | | | | |
| يُجَاهِدُ | لِنَفْسِهٖ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | لَغَنِيٌّ | عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ۝ | |
| هغه محنت کوی | دپاره نفس خپل | بیشکه الله | خامخا بې پروا دې | دمخلوقاتونه | |
| هغه د خپلې فائدې دپاره کوشش کوی \| بیشکه الله جل جلاله د ټولو کائناتونه بې پرواه دې | | | | | |
| وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | لَنُكَفِّرَنَّ | عَنْهُمْ | |
| او هغه کسان | چې ایمان نې راوړو | او عملونه نې اوکړل نیك | خامخا به لرې کړو مونږ | دهغوئ نه | |
| اوکومو کسانو چې ایمان راوړې دې \| اونیک عملونه نې کړی دی\| مونږ به د هغوئ نه | | | | | |
| سَيِّاٰتِهِمْ | وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ | اَحْسَنَ | الَّذِيْ كَانُوْا | | |
| بدیانې (ګناهونه) دهغوئ | او خامخا به بدله ورکړو مونږ هغوئ له | ښه بدله دهغې | چې وو هغوئ | | |
| دهغوی ګناهونه لرې کړو\| اوهغوی ته به د هغوی د نیکو عملونو ډیره ښه بدله ورکړو ........... | | | | | |
| يَعْمَلُوْنَ ۝ | | | | | |
| چې کول به نې \| | | | | | |

**قوله تعالى:- وَمَنْ جَاهَدَ فَإِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهِ ۖ**

**نیک کارکول هم جهاددي**:-دچاچه داخرت دبدلواميددي،هغوى دامخي ته کيدى اونيکئ کوى.دهغوى اميدونه به پوره شي.اودوى ته به نه ختميدونکي ثواب ملاويږي.الله ﷻ ددعاګانواوريدونکے دي.اوټول کائنات نه خبرداردي.دالله ﷻ مقررکړي شوي وخت لرې کيږى نه،بيافرمائي چه هرنيك عمل کونکي د خپل خان دپاره ګټه کوى.الله تعالى دبدګانودعملونونه بي پرواه دي.که ټول انسانان متقيان جوړشي نودالله تعالى په بادشاهئ کښي څه زيات والي نه شي راتلي،حسن بصري ؒ فرمانى چه جهاد يوازي دتوري چلولونوم نه دي.انسان که دنيکوپه کوشش کښي لګياوى نوداهم ديوقسم جهاددي.په دي کښي شك نشته چه ستاسونيکئ دالله ﷻ څه پکارنه راخى،خوبياهم دادهغهٔ مهربانى ده چه هغه تاسوته په نيکو باندي بدله درکوى.ددي په وجه ستاسوبدئ معاف کوى دورې نه دورې نيکئ قدرکوى اوپه هغي باندي دلوي نه لوي اجرورکوى.ديوي يوي نيکئ اوٌوه سوه چنده بدله ورکوى.اوبدى يا خو بالکل معاف کړى يادهغي برابرسزاورکوى.هغهٔ دظلم نه پاك دي نيکئ سواکوى اوخپل طرف نه اجر عظيم ورکوى.دايمان والودسنت مطابق نيکئ قبلوى اودهغوى ګناهونه معاف کوى اوهغوى ته د نيکو عملونو بدله ورکوى.

| |
|---|
| وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ۖ وَإِنْ |
| \| او هدايت کړې دې مونږه \| انسان ته \| دمور اوپلار سره \| دنيك سلوك \| اوکه چرى |
| اومونږ انسان ته دمور پلار سره د ښه سلوک حکم کړې دې \| او "دا حکم مو هم ورکړې دې" |
| جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ |
| جګړه کوى ستاسره \| چې ته شريك کړې \| زما سره \| هغه \| چې نهٔ وى \| تالره \| په هغي باند \| علم |
| که هغوئ ما سره په شرک کولو تامجبور کړى د کوم په جواز چې تاسره څه علم نشته |
| فَلَا تُطِعْهُمَا ۚ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ |
| نومهٔ منه دهغوئ دواړو \| خاص ماته \| واپس راتلل دى ستاسو \| پس زهٔ به خبر درکړم تاسوته \| |
| نود هغوئ دواړو تابعدارى مکوه \| ستاسو ټولو ماته پيش کيدل دى \| نو زهٔ به تاسو ته ستاسو |
| بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ۝ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا |
| په هغي کارونو\|چې وئ تاسو\| چې کول به مو \| اوهغه کسان\|چې ايمان ئې راوړو\|اوعملونه ئې اوکړل |
| دهغه عملونو خبر درکړم کوم چې تاسو کول\|اوکومو کسانو چې ايمان راوړي دې او نيک اعمال |
| الصَّالِحَاتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصَّالِحِينَ ۝ |
| نيك \| خامخا به داخل کړو مونږ هغوئ \| په صالحانو کښې \| |
| کوى \| نو مونږ به يې خامخا په نيکانو کښې شامل کړو |

**قوله تعالى:- وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ۖ**

**دموريلار مشروط اطاعت واجب دي**:-اول ئې په خپل توحيدباندي په سختئ سره دقائم پاتي کيدوحکم اوفرمائيلواوس مورپلارسره داحسان حکم ورکوى.څکه چه هم ددوى په وجه دانسان وجودوى،پلارخرچ

کوي اوپرورش کوي.مور ورسره محبت ساتي اوپالنه ئې کوي.په دويم ايت کښې فرمان دئ﴿وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا﴾ الخ.الله تعالی فيصله کړې ده چه تاسودهغهٔ نه علاوه دبل چاعبادت مهٔ کوئ اودموريلارپوره اطاعت کوئ.په دوی دواړوپاپه دوی کښې کهٔ په يوباندې دبوډاتوب وخت راشي نو هغوی ته اف هم مهٔ وايئ رټنه پکښې لادکومې؟بلکه هغوی سره په ادب سره خبرې کوې اودرحم سره د هغوی په وړاندې ښکته کيږئ اودالله تعالی نه دهغوی دپاره دعاغواړئ چه اې الله،په دوی داسې رحم اوکړه څنګه چه به دوی په ماپه وړوکوالی کښې کولو.ليکن داخيال ساتئ کهٔ دوی مودشرك طرف ته رابلي نوددوی خبره مه منئ،پوهه شئ چه يوه ورځ تاسره زماپه وړاندې ودريدل دی.هغه وخت به زهٔ د خپل عبادت اوزمادحکم مطابق دموريلارداطاعت بدله درکوم.اونيکوخلقوسره به دې حشراوکړم.کهٔ تادموريلارهغه خبرې اونه منلې چه زماداحکاموخلاف نه دی خواه که هغه هر څنګه وی زهٔ به تادهغوی نه بيل کړم.څکه چه دقيامت په ورځ به انسان دهغهٔ سره وی څوك چه به د هغهٔ په دنياکښې خوښ وو.څکه نې ددې نه پس اوفرمائيل چه په ايمان والواونيك عملو او صالحانو بندګانو کښې به مو ملاو کړم.حضرت سعدﷺفرمائی چه زماپه باره کښې څلورايتونه نازل شوی دی دا څکه نازل شوچه زما مور ماته اوونيل چه اې سعد،ايادالله تعالی حکم زماسره دنيکئ کولونه دې؟کهٔ تا د حضورﷺدنبوت نه انکاراونه کړونووالله زهٔ به خوراك څخاك پريږدم.چنانچه هغې هم دغه شان اوکړل تر دې پورې چه خلقوبه په زبردستئ دهغې خوله پرانسته اوخوراك به ئې دهغې حلق ته اورسولوپس دايت نازل شو[1]

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنَ النَّاسِ | | | | | | | |
| او خينې دخلقو نه | | | | | | | |
| او په خلقو کښې بعضې داسې دی | | | | | | | |
| مَنْ | يَّقُوْلُ | اٰمَنَّا | بِاللّٰهِ | فَاِذَآ | اُوْذِيَ | | |
| هغه څوك دی | چې وائی | چې ايمان راوړو مونږه | په الله باندې | اخوهر کله چې | تکليف ورکړې شو | | |
| چې وائی مونږ په الله ﷻ | ايمان راوړی دی | ......خو کله چې ورته دالله ﷻ په لار کښې (لږ ډير) تکليف | | | | | |
| فِي اللّٰهِ | جَعَلَ | فِتْنَةَ النَّاسِ | كَعَذَابِ اللّٰهِ ؕ | وَلَئِنْ | جَآءَ | | |
| په لار دالله کښې | نووې ګنړو | آزميښت دخلقو | پشان دعذاب دالله | او که چرې | راغې | | |
| ورکړې شی | نود خلقو دلاس تکليف د الله ﷻ د عذاب پشان ګنړی | اوکه چرې تاته د خپل رب د طرفه | | | | | |
| نَصْرٌ | مِّنْ رَّبِّكَ | لَيَقُوْلُنَّ | اِنَّا كُنَّا | مَعَكُمْ ؕ | اَوَلَيْسَ اللّٰهُ | | |
| امداد | دطرفه درب ستا نه | نو خامخا به وائی هغوئ | بيشکه وو مونږ | ستاسو سره | آيا نهٔ دی الله | | |
| څه مدد دراورسی | نو مومنانو ته وائی چې مونږ خو تاسو سره وو | آيا الله ﷻ په ټولو خبرو خبر نه دی | | | | | |
| بِاَعْلَمَ | بِمَا | فِيْ صُدُوْرِ الْعٰلَمِيْنَ ۝ | وَلَيَعْلَمَنَّ اللّٰهُ | | | | |
| زيات خبردار | په هغه حال | چې په سينو دمخلوقاتو کښې دی | او خامخا به معلوموی الله | | | | |
| چې د مخلوق په سينو کښې پټ دی | .............اوالله تعالی به خامخا هغه خلق ښکاره کړی کومو | | | | | | |

[1] صحيح مسلم کتاب فضائل الصحابه باب فی فضل سعد بن ابی وقاصؓ:۱۷۴۸،ترمذی:۳۱۸۹.

| | | | |
|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَلَيَعْلَمَنَّ | الْمُنٰفِقِيْنَ۝ |
| هغه کسان | چې ايمان ئې راوړي دي | او خامخا به معلوموي هغه | منافقان خلق |
| چې ايمان راوړي دي | او کوم چې منافقان دي | هغوئ به هم ضرور ښکاره کړي | |

قوله تعالى:- وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ

داهل ايمان امتحان اومنافق:-دهغه منافقانوذکرکيږي چه په ژبې سره دايمان دعوى کوى.ليکن چرته چه ورته دمخالفينودطرفنه څه تکليف اورسيدونودوى هغه درب عذاب اوګنړي اومرتدشي.همدغه معنى ابن عباسؓوغيره کړې ده.څنګه چه په بل ايت کښې دى ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ﴾ الخ يعنى بعضې خلق په يوه غاړه باندې اودريږى اودالله تعالى عبادت کوى.که راحت ورته ملاوشونومطمئن شي، اوکه مصيبت وراورسيدونومخ ئې اوګرځولو.الخ..دلته هم دغه بيان کيږى چه حضورﷺ ته که څه غنيمت ملاوشى څه ګټه ملاوشى نودوى خپل خانونه دين داره ظاهروى.څنګه چه په بل ايت کښې دى (الذين يتربصون بکم)هغوى تاسوته ګورى که فتح اومددوى نواوازاوکړى چه ايامونړ ستاسونه يو؟اوکه د کافرانوخبره غلبه شي نودهغوى سره خپل سازبازجوړوى،چه ګورئ مونړ ستاسوملګرتيااوکړه او تاسو موبچ کړئ.الله تعالى اوفرمائيل چه ډيره ممکنه ده چه الله تعالى خپل نيک بندګان بالکل غالبه کړى، نودوى به په خپل دې پټ حرکت باندې بالکل ستومانه شي.دلته ئې اوفرمائيل چه داڅه خبره ده چه دوى ته دومره هم معلومه نه ده چه الله تعالى عالم الغيب دې.چرته چه ورته دزبانى خبرې پته ده هلته دزړه خبره هم هغه ته معلومه ده.الله تعالى به نيکئ اوبدئ اوپيژنى اونيک اوبداومومن اومنافق به جدا جداکړى.دنفس ياران به دګتې دپاره يوطرف ته شي اوبه ګټه تاوان کښې ايمان نه پريښودوواله به ظاهرشي.څنګه چه ئې اوفرمائيل﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتّٰى نَعْلَمَ الْمُجٰهِدِيْنَ مِنْكُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ﴾الخ مونړ به په تاسو ازمينتونه کوو،تردې پورې چه په تاسوکښې مجاهدين او صابرين مونړ ددنياپه وړاندې ظاهرکړو، او ستاسو دخبروازمينبت اوکړو.داحددامتحان ذکرئې اوکړو او وې فرمائيل چه الله تعالى مومنانولره په هغه حالت کښې په کوم چه هغوى ووساتل نه غوښتل ،ترڅوپورې چه دپاک اوپليت فرق اونه شي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | لِلَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اتَّبِعُوْا |
| اووائى هغه کسان | چې کفر ئې کړي دي | هغه کسانو ته | چې ايمان ئې راوړي دي | چې پيروى اوکړئ |
| اوکافران خلق مومنانو ته وائي چې زمونړ د لارې تابعدارى اوکړئ او تاسو هم مشرکان شئ نو اول خو قيامت شته نه او که وي، | | | | |
| سَبِيْلَنَا | وَلْنَحْمِلْ | خَطٰيٰكُمْ | وَمَا هُمْ | بِحٰمِلِيْنَ |
| دلارې زمونړه | او بار به کړو مونږه | خطاګانې ستاسو | او حال دا چې نه دي هغوئ | بارونکى |
| نو مونړ به ستاسو دګناهونو پيټى پخپلو خانونو بار کړو حالانکه دوئ (مشرکان) د هغوئ د ګناهونونه | | | | |
| مِنْ خَطٰيٰهُمْ | مِّنْ شَيْءٍ | اِنَّهُمْ | لَكٰذِبُوْنَ۝ | وَلَيَحْمِلُنَّ |
| دخطاګانو دهغوئ نه | هيڅ خيز لره | بيشکه هغوئ | بالکل دروغژن دي | او خامخا به بار کوى هغوئ |
| معمولى قدرې هم نشي بار کولې | بلکه دوئ سراسر دروغژن دى | ......... اودوئ به خپل پيټى هم | | |
| اَثْقَالَهُمْ | وَاَثْقَالًا | مَّعَ اَثْقَالِهِمْ | وَلَيُسْـَٔلُنَّ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ |
| پيټى خپل | او پيټى نور | دپيټو خپلو سره | او خامخاترې به تپوس کيږى | په ورځ دقيامت |
| اوچت کړي وى او دوى به د خپلو سره د نورو (دګناهونو) پيټى هم اوچت کړى او د قيامت په ورځ به | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَمَّا | كَانُوْا | يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳﴾ | |
| دهغې دروغو | چې وو هغوئ | چې دخان نه به ئې جوړول | او په تحقیق سره اولیږلو مونږ نوح |
| ترې د دې دروغو جوړولو په حق کښې خامخا تپوس کیږی | اومونږ نوح ﷺ | | |

**قوله تعالی:- وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا**

**اعمال به ستاسوپخپل کارراشي:** کفارقریش به دمسلمانانودغلولودپاره هغوی ته داوئیل چه تاسو زمونږ په مذهب باندې عمل کوئ، که په هغې کښې څه گناه وی نوهغه په مونږده. حالانکه دااصولاً غلطه ده. چه دیوبوج بل اوچت کړی، دوی بالکل دروغ وائی ځوك دخپل رشته دارگناه هم په خپل سر اخستې نه شي. دوست به ددوست په دغه ورځ پوښتنه نه کوی. اودغه خلق به په دغه ورځ د خپلو خپلو گناهونو بوجونه اوچتوی، اوځوك چه دوی گمراه کړې وو، دهغوی بوج به هم دوی په سرکړې شي. خوهغه گمراه کړې شوې خلق به هم بې بوجه نه وی. دهغوی بوج په هغوی باندې دې. څنگه چه ئې اوفرمائیل لِيَحْمِلُوْا اَوْزَارَهُمْ الخ. یعنی دوی به خپل اوج اوچتوی اوځوك چه ئې غلولې وودهغوی د غلولو گناه به هم په دوی وی. په صحیح حدیث کښې دی چه ځوك خلقودهدایت طرف ته دعوت ورکړی ترقیامته پورې چه ځوك په هغې باندې ځی هغوی ټولوته چه څومره ثواب ملاویږی هم هغومره ثواب به ده ته هم ملاویږی. لیکن دهغوی ثوابونوکښې به هم څه کمې نه راځی. هم دغه شان که چابدی خوره کړه اوپه هغې هرڅومره کسانوعمل اوکړودهغوی ټولوچه څومره گناه وی هم هغومره به دده هم وی. او د هغوی په گناه کښې به څه کمې نه کیږی([1]) په یوبل حدیث کښې دی چه په زمکه باندې څومره مرگونه کیږی دحضرت ادم ﷺ هغه خوې چاچه په ناحقه خپل رورقتل کړې ووبه هغه به ددې مرگ وبال پریوځی. ځکه چه بې خایه قتل هم دهغه نه شروع شوې وو([2]) دهغوی دټولوبهتانونو او دروغو اوالزامونوبه دقیامت په ورځ تپوس کیږی ابوامامه ﷺ اوفرمائیل، حضور ﷺ الله ﷺ ټول رسالت وراورسولو، حضور ﷺ داهم اوفرمائیلی دی چه د ظلم نه بچ شئ، ځکه چه دقیامت په ورځ به الله تبارك وتعالی اوفرمائی چه زماپه خپل عزت اوجلال باندې قسم دې چه نن به یوظلم هم نه پریږدم. بیابه یواعلان کونکې اعلان اوکړی چه فلانې فلانې چرته دې؟ هغه به راشی اودغرونوهومره نیکئ به دهغه سره وی. تردې پورې چه دمحشروالوبه دهغه طرف ته نظر شی هغه به راشی اودالله تعالی په وړاندې به اودریږی. بیابه اعلان کونکې اعلان اوکړی چه که په دې باندې دچاحق وی، ده په چاظلم کړې وی هغه دې راشی اوخپله بدله دې واخلی. اوس به داخوا دیخوانه خلق راشی اواوبه دریږی. اوده نه به گیر چاپیره شی اودالله تعالی په وړاندې به اودریږی. الله تعالی به ورته اوفرمائی چه زمادې بندگانوته حق ورکړه. فرښتې به اووائی اې الله. الله تعالی به ورته اوفرمائی دده نیکئ راواخلئ اودوی ته ئې ورکړئ. نو هم دغه شان به اوکړې شی. تردې پورې چه یوه نیکی به هم ورسره باقی پاتې نه شی. او تردې پورې چه بعض مظلوم اوحقدار به باقی پاتې شی. الله ﷺ به حکم اوفرمائی چه ددوی گناهونه په ده باندې بارکړئ. بیا حضور ﷺ اووریدو او ددې ایت تلاوت ئې اوفرمائیلو وَلَيَحْمِلُنَّ اَثْقَالَهُمْ وَاَثْقَالًا مَّعَ اَثْقَالِهِمْ([3]) په ابن ابی حاتم کښې دی چه حضور ﷺ اوفرمائیل اې معاذا د قیامت په ورځ به دمومن دټولو کوششو نه سوال اوکړې شی تردې پورې چه دهغه درنجو اچولو او د خټې اغږلونه هم. گوره چه داسې نه وی چه دقیامت په ورځ بل ځوك ستانیکئ یوځی.

---

[1]) صحیح مسلم کتاب العلم باب من سنة حسنة سیئة :۲٦۷٤،ابی داؤد:٤٥٤٩، ترمذی:۲٦۷۱.

[2]) صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب اثم من دعا الی ضلال اوسن سنة سیئة: ۷۳۲۱، صحیح مسلم:۱٦۷۷.

[3]) الدرالمنثوره/۲۷۲، صحیح مسلم کتاب البر باب تحریم الظلم: ۲٥۸۱،ترمذی: ۲٤۲۰،احمد:۲/۳۷۱،مسند ابی یعلی:٦٤٤۹.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا
| او په تحقيق سره اوليږو مونږ | نوح
| او مونږ نوح ؑ

إِلَىٰ قَوْمِهِ فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا ط
قوم دهغه ته | پس موده تيره کړه هغه | په هغوئ کښې | زر کاله | مګر نه | پنځوس کاله
خپل قوم طرف ته ليږلي وو | نو هغه په کښې (د دعوت په غرض) پنځوس کم زر کاله عمر تير کړو

فَأَخَذَهُمُ الطُّوفَانُ وَهُمْ ظَالِمُونَ ۝ فَأَنْجَيْنَاهُ
پس اونيول هغوئ | طوفان | حال دا چې هغوئ | ظالمان وو | بيا بچ کړو مونږ هغه
نو بيا په هغوئ باندې طوفان راغلو | حال دا چې هغوئ لوئي ظالمان وو | بيا مونږ هغه (نوح) او په

وَأَصْحَابَ السَّفِينَةِ وَجَعَلْنَاهَا آيَةً لِلْعَالَمِينَ ۝
او ملګري | دکشتئ | او جوړه کړه مونږه هغه | يو نښه (دعبرت) | دپاره دخلقو ددنيا
بيړئ کښې سوارهٔ ټول مومنان بچ کړل | اودا واقعه مود ټولې دنيا دپاره عبرت اوګرځوله

قوله تعالى:- وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا

دنوح ؑ داوادې زمانې وعظ:- پدې کښې دحضور ﷺ تسلي ده حضور ﷺ ته خبرورکړې کيږی چه د حضرت نوح ؑ دومره ډيروخت پورې خپل قوم دالله تعالى طرف ته رابللو.شپه ورځ په پټه اوپه ښکاره هر قسمه هغهٔ دالله تعالى ددين دعوت ورکړو،ليکن هغوی په خپله سرکشئ اوګمراهئ کښې نورهم زياتيدل، ډيرکموخلقوپه هغوی باندې ايمان راوړو،اخردالله تعالى غضب په هغوی باندې دطوفان په شکل کښې راغې اوهغوی ئې نهس نس کړل.نواې پيغمبراخرالزمان ﷺ اته دخپل قوم نه ددې تکذيب خيال نوې مه ګنړه،اوتهٔ خپل زړهٔ خفه کوه مهٔ.هدايت اوضلالت دالله تعالى په لاس کښې دې .دکوموخلقوچه جهنم ته تګ مقررشوې دې هغوی ته خوځوك هم هدايت ورکولې نه شی.اګرکه ټولې نښانې اووينی خوهغوی ته به ايمان نصيب کيږی نهٔ.نوپه اخره کښې چه څنګه نوح ؑ ته خلاصې ملاو شواوقوم ئې ډوب شوهم دغه په اخره کښې غلبه ستاده،اوستامخالفت کونکی به بيلات کوی.دحضرت ابن عباس ؓ قول دې چه دخلوېښتوکالوپه عمرکښې حضرت نوح ؑ ته نبوت ملاوشواودنبوت نه پس نهه نيم سوه کاله هغهٔ خپل قوم ته تبليغ کولو،دطوفان دخاص اوعام هلاکت نه پس هم ترشپيتو کالو پورې ژوندې وو.تردې پورې چه دبنی ادمونسل زيات شو.اوپه دنياکښې په ګنړشميره په نظرراغلو.قتاده ؒ فرمائی چه حضرت نوح ؑ ټول عمرنهه نيم سوه کاله وو.درې سوه کاله دوی بغيرددعوت نه په هغوی کښې تير کړل، درې سووکالوپورې دالله تعالى طرف ته خپل قوم رابللو،اودطوفان نه پس درې نيم سوه کاله پورې ژوندې وو.خوداقول غريب دې.اودايت دظاهری الفاظونه خوهم دغه معلوميږی چه دوی دنهه نيم سوه کاله پورې خپل قوم دالله تعالى دوحدانيت طرف ته رابللو،عون بن ابی شداد وائی چه کله د دوی ؑ عمردرې نيم سوه کاله ووهغه وخت دالله تعالى وحی په دوی ؑ باندې نازله شوه،ددې نه پس نهه نيم سوه کاله پورې دوی خلقوته دالله تعالى کلام رسولو،ددې نه پس درې نيم سوه کاله پورې عمر نوربيامونده.خوداهم غريب قول دې.زيات ټيك دحضرت ابن عباس ؓ قول په نظرراځی.والله اعلم.ابن عمر ؓ مجاهدته اووئيل چه حضرت نوح ؑ په خپل قوم کښې څومره مودې پورې وو؟هغهٔ ورته اووئيل نهه نيم سوه کاله پورې.دوی ورته اوفرمائيل ددې نه پس دخلقواخلاق اوعمرونه او عقلونه ترنن ورځې

پورې په کمیدودی.کله چه دنوح ﷺ په قوم باندې دالله ﷻ غضب نازل شونوالله تعالی پخپل فضل او کرم سره خپل نبی اودایمان واله کوم چه هغوی سره دهغوی په حکم باندې دطوفان نه مخکښې په کشتۍ کښې سواره شوې وو،بچ کړل.په سوره هود کښې ددې تول تفصیل تیرشوې دې.ددې وجې نه ئې مونږ دلته دوباره ذکرنه کوو.مونږدغه کشتۍ ددنیادپاره دعبرت نښخه جوړه کړه.یاخوپه خپله دغه کشتۍ څنګه چه دحضرت قتاده قول دې چه داول اسلام پورې هغه دجودی په غرباندې وه.یاددې کشتۍ په لیدوسره په اوبوکښې دسفردپاره خلقوچه کومې کشتۍ جوړې کړې دوی چه دااووینی نودالله ﷻ هغه بچ کیدل وریادشی(١)څنګه چه فرمان دې﴿وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝ وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا يَرْكَبُوْنَ ۝﴾ الخ. زمونږ دقدرت یوه نخښه دهغوی دپاره داهم ده چه مونږ دهغه نسل په یوه ډکه کشتۍ کښې کینولو،اومونږدهغوی دپاره نورې هم دغه شان سورلي جوړې کړی دی.الخ.په سوره الحاقه کښې ئې اوفرمائیل چه کله داوبوطوفان راغې نومونږ تاسو په کشتۍ کښې سورکړلي.اوداواقعه موستا دپاره یویادګارجوړه کړه.چه کوموغوږونوته الله ﷻ د یاد ساتلو طاقت ورکړې دې هغوی یاد اوساتی. دلته دکس نه دجنس ته ختل شوی دی څنګه﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ﴾ والا ایت کښې ئې د دنیاوی اسمان ستورو لره داسمان ښائست اوفرمائیلواوددې نوعیت ئې دشیطانانودپاره دکانړوویشتل اوفرمائیل،په ایت کښې ئې دانسان دخاورې نه پیدا کیدو ذکر اوفرمائیلو،چه بیامونږ دې ته دنطفې شکل ورکړواوپه یو محفوظ ځائې کښې ورته قرارګاه جوړه کړه.اوداهم کیدې شی چه په ایت کښې ﴿تَرَكْنَا﴾ دضمیرمرجع عقوبت اوسزااوکړې شی.والله اعلم.(دلته داخیال ساتۍ چه دتفسیرابن کثیرپه بعضونسخوکښې دشروع په تفسیرکښې څه عبارات زیات دی چه په بعضونسخوکښې نشته.هغه دادې چه الله تعالی حضرت نوح ﷺ لره نهه نیم سوه کاله پورې ازمائیل اوفرمائیل اودهغه دخپل قوم داطاعت ازمیښت ئې اوفرمائیل چه دهغوی د تکذیب په وجه الله تعالی هغوی ډوب کړل.بیائې دهغې نه پس اوسیزل،بیائې دحضرت ابراهیم ﷺ دقوم ذکراوفرمائیلوچه هغوی هم فرمانبرداری اومتابعت اونه کړوبیائې د لوط ﷺ ذکراوفرمائیلواودهغه دقوم انجام ئې ذکراوفرمائیلو،بیائې دحضرت شعیب ﷺ واقعات مخې ته کړل، بیائې دعادیانو ، ثمودیانو، قارونیانو،اوهامانیانوذکراوفرمائیلوچه په الله تعالی باندې دایمان نه راوړلواوتوحیدنه منلو په وجه دوی ته داداقسمه سزاګانې ورکړې شوې.بیائې دخپل پیغمبر اعظم المرسلین ﷺ دمشرکانواومنافقانودلاسه تکلیفونه برداشت کول ذکراوفرمائیل، اوحضور ﷺ ته ئې حکم اوکړو چه د اهل کتاب سره په بهترینه طریقه مناظره کوه.

| وَاِبْرٰهِيْمَ | اِذْ | قَالَ | لِقَوْمِهِ | اعْبُدُوا اللّٰهَ | وَاتَّقُوْهُ ط |
|---|---|---|---|---|---|
| او اولیږو مونږه ابراهیم | کله چې | اووئیل هغه | قوم خپل ته | ابندګی کوئ دالله | او اویریږئ دهغه نه |
| او ابراهیم ﷺ (مو لیږلي وو) څه وخت چه هغه خپل قوم ته اووئیل ا د الله ﷻ عبادت کوئ او دهغه نه ویریږئ | | | | | |

| ذٰلِكُمْ | خَيْرٌ | لَّكُمْ | اِنْ كُنْتُمْ | تَعْلَمُوْنَ ۝ | اِنَّمَا | تَعْبُدُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دا کار | ابهتر دې | ستاسو دپاره | که یئ تاسو | چې پوهیږئ | بیشکه | عبادت کوئ تاسو |
| که تاسو پوهیږئ نو دا خبره ستاسو دپاره غوره ده ......... .تاسو د الله ﷻ نه سوا د بتانو | | | | | | |

| مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | اَوْثَانًا | وَّتَخْلُقُوْنَ | اِفْكًا ط | اِنَّ الَّذِيْنَ | تَعْبُدُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| بې دالله نه | دبتانو | او جوړوئ | ادروغ دخانه | ابیشکه هغه خوک | چې عبادت ئې کوئ تاسو |
| عبادت کوئ ............ او دخان نه دروغ جوړوئ (چې دا خدایان دی) ا تاسو چې دالله ﷻ نه سوا | | | | | |

(١) الطبری: ١٨/٢٠.

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُوْنَ لَكُمْ رِزْقًا فَابْتَغُوْا

بې د الله | نه | هيڅ اختيار نه لري | ستاسو دپاره | د رزق درکولو | پس تلاش کړئ

د بل چا عبادت کوئ | هغوئ تاسو ته هيڅ روزي نشي درکولې | نو خپل رزق د الله ﷻ

عِنْدَ اللّٰهِ الرِّزْقَ وَاعْبُدُوْهُ وَاشْكُرُوْا لَهٗ ۭ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝

په نز د الله | رزق | او بندګي کوئ دهغه | او شکر اوباسئ | دهغه | خاص هغه ته به تاسو واپس کيږئ

سره اولټوئ | او دهغه عبادت کوئ | او دهغه شکر اداکوئ | او تاسو به هغه ته واپس کيږئ

وَاِنْ تُكَذِّبُوْا فَقَدْ كَذَّبَ اُمَمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ۭ

| او که | دروغ اوګڼړئ تاسو | نو دروغ ګڼړلي دی | ډير قومونه | مخکښې ستاسو نه

او که چرې تاسو (حقه خبره) دروغ ګڼړئ نو ستاسو نه وړاندې هم ډيرو قومونو دروغ ګڼړلې وه

وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ۝

او نشته | په رسول باندې | مګر | رسول د (پيغام) صفاصفا |

او د پيغمبر په ذمه صرف خپل ښکاره پيغام رسول دی |

**قوله تعالی:- وَاِبْرٰهِيْمَ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ**

**دامام الموحدين حضرت ابراهيم ؑ دعوت توحيد:** دامام الموحدين ابوالمرسلين خليل الله ؑ بيان کيږي. چه هغهٔ خپل قوم ته دتوحيدالهي دعوت ورکړو. درياکارئ نه بچ کيدواوزړهٔ کښې دپرهيزګارئ قائمولو حکم ئې ورکړو. دهغهٔ په نعمتونودشکراداکولودپاره ئې ورته اوفرمائيل اوددې کته ئې هم ورته اوښود له.چه ددنيااواخرت بدئ ددوی نه لرې شی.اوورسره ئې ورته داهم اوفرمائيل چه د کومو بتانو تاسو عبادت کوئ داخوبې ضرره اوبې نفعې دی.تاسوپه خپله ددوی نومونه اوبدنونه تراشلې دی. او هغوی هم ستاسوپه شان مخلوق دې.بلکه ستاسونه زيات کمزورې دی.هغوی خو ستاسو د روزئ اختيارهم نه لری.دالله تعالی نه روزئ غواړئ.هم ددې حصې سره ايت ﴿اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ۝﴾ هم دې.چه مونږ ټول ستاعبادت کوواوستانه مددغواړو.داحصه دحضرت اسيه ؓ دعاده.﴿رَبِّ ابْنِ لِيْ عِنْدَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ﴾ اې الله! زما دپاره دخپل ځان سره په جنت کښې کور جوړ کړه.چونکه دهغهٔ نه سوابل څوك رزق ورکولې نه شی ددې وجې نه تاسوهم دهغهٔ نه روزی غواړئ.اوکله چه دهغهٔ روزی اوخورئ نودهغهٔ نه علاوه دبل چا عبادت مه کوئ.دهغه د نعمتونو شکرپه ځائ راوړنی. په تاسوکښې هريو د هغه طرف ته واپس کونکی دی هغه به هرعامل ته د هغه د عمل بدله ورکوی. ګورئ ماته په دروغژن وئيلوسره خوشحاليږئ مه.نظرواچوئ چه ستاسونه مخکښې کوموکسانودنبيانوسره دورغ منسوب کړې وو دهغوی څه حالت شو.يادساتئ دنبيانوکارصرف دالله تعالی پيغام رسول دی.هدايت ورکول اونه ورکول دالله تعالی په لاس کښې دی.خپل ځانونه په خپله په سعادت مندوکښې شامل کړئ په بدبختانوکښې نهٔ.حضرت قتادهؒ خوفرمانی چه په دې کښې دحضورﷺ نورهم تسلي کړې شوې ده.ددې مطلب تقاضاخوداده چه اولنئ خبره خوختمه شوه ،دې ځائې نه واخله ﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ﴾ پورې ټول عبارت بطورجمله معترضه ده،ابن جريرؒ خوپه ښکاره ټکوسره هم دغه وئيلې دی ،خودقران پاك دالفاظونه خوپه ظاهره دامعلوميږی چه داټول کلام دحضرت خليل الرحمان ؑ دې،ددوی تردقيامت دقائميدوپورې دليلونه ئې پيش کول،خکه چه ددې ټول کلام نه پس دهغوی دقوم ذکرشوې دې.

أَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ

| ايا نهٔويني دا خلق | چې څرنګې

| .............ايا دوی نه ويني (اوته ګوری)

يُبْدِئُ اللّٰهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهٗ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ

اول شروع کوی | الله | دپيداوښت (دمخلوق) | بيا دوباره پيدا کوی هغه | بيشکه دا دوباره پيدا کول

چې الله ﷻ څنګه په اول خل مخلوق پيدا کوی | اوبيا به ئې څنګه سردوباره پيدا کوی؟ | دا کار

عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ⑲ قُلْ سِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا

په الله باندې | اسان دی | ورته اووايه | چې اوګرزئ | په زمکه کښې | پس اوګورئ |

په الله ﷻ باندې ډير اسان دې | (محبوبه) اووايه چې په زمکه کښې اوګرځئ | نو اوګورئ

كَيْفَ بَدَاَ الْخَلْقَ ثُمَّ اللّٰهُ يُنْشِئُ النَّشْاَةَ

چې څرنګې | اول شروع کړی ده هغه دپيداوښت | بيا به الله | پيدا کړی | پيدا کول |

چې الله ﷻ څنګه په اول خل مخلوق پيدا کړي دي | بيا به الله ﷻ مخلوق په دويم خل

الْاٰخِرَةَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ⑳ يُعَذِّبُ مَنْ

روستنی په دويم خل) | بيشکه الله | په هر څيز باندې | قادر دی | عذاب ورکوی | هغه چاته

پيدا کړی | بيشکه الله ﷻ په هره څه باندې قادر دی | ............ چا ته چې اوغواړي نو عذاب ورکوی

يَّشَاۤءُ وَيَرْحَمُ مَنْ يَّشَاۤءُ ۚ وَاِلَيْهِ

چې خوښه ئې شی | او رحم کوی | په هغه چا | چې خوښه ئې شی | او خاص هغه ته |

او په چا چې اوغواړي نو رحم پرې کوی | ........................ اوهغه ته به تاسو ټول واپس کيږئ

تُقْلَبُوْنَ ㉑ وَمَاۤ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ وَلَا

به تاسو واپس بوتلې کيږئ | اونهٔ يئ تاسو | عاجزه کونکې (الله لره) | په زمکه کښې | اونهٔ

............اوتاسو په زمکه اوپه اسمان کښې د الله نه بچ کيدې نشئ ............

فِي السَّمَاۤءِ ۡ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ㉒

په اسمان کښې | اونشته تاسو لره | بچ کونکې دالله نه | څوک دوست | اونهٔ څوک مدد ګار |

.......... ..............اوستاسو دپاره دالله ﷻ نه سوا هيڅوک کارساز او مددګار نشته

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَاۤئِهٖۤ اُولٰۤئِكَ

او هغه کسان | چې انکار ئې کړې دی | دايتونو دالله نه | او دملاقات دهغه نه | دا کسان چې دی |

اوکوم خلق چې د الله ﷻ د ايتونو اود هغه دملاقات نه انکار کوی | ...........................داسې خلق زما

يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ وَاُولٰۤئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ㉓

نااميد شوی دی | درحمت زمانه | او هم ددوئ دپاره | عذاب | دردناك دی |

درحمت نه نااميده دی | او د دغه خلقو دپاره دردناک عذاب مقرر دې |

قوله تعالى:- اَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ اللّٰهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ

غورنه کوی چاچه دنیشت نه ورته وجودور کړوهم هغه دعبادت لائق دی.ګوروچه هغوی هیڅ هم نه وو، بیا الله ﷻ پیداکړل.خودمرګ نه پس دژوندقائل نه دی.حالانکه په دې باندې دڅه دلیل ضرورت نشته. څوك چه په اول ځل پیداکول کولې شی دهغه دپاره په دويم ځل پیداکول ډیراسان دی.

قُلْ سِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ

دالله ﷻ په قدرتنو دلائل اواثبات د قیامت:-بیاهغوی ته هدایت کوی چه تاسودزمکې په نشانوکښې غور اوکړئ،داسمانونوستورواوغرونوته اوځنګلونو ته،او نهرونو ته،او دریابونوته،اوسمندرونوته،او میووته او پېتوته ته لږ شان خواوګورئ داټول نه وو،بیاالله تعالی هرڅه پیداکړل،ایاپه تاسو دالله ﷻ نخښې نخښانې ظاهرې نه دی؟تاسونه ګورئ چه دومره لوئ صانع اوقدیرالله څه نه شی کولې؟ هغه خو صرف په اوشه ونیلوسره هرڅه کولې شی.هغه خپل اختیاره دې.هغه ته داسبابواوسامان ضرورت نشته. هم دغه مضمون ئې په بل ځائې کښې اوفرمائیلو چه هم هغه په نوی پیدانش کښې پیدا کول کوی اوهم هغه به مویه دويم ځل پیداکوی.داخودهغه دپاره ډیراسان دی.بیائې اوفرمائیل چه په زمکه باندې اوګرځئ اواوګورئ چه الله تعالی په اول ځل پیدانش څنګه اوکړو،نوتاسوته به معلومه شی چه دقیامت په ورځ په دويم ځل دپیدانش کیفیت به څه وی.الله ﷻ په هرڅیزباندې قادردې.څنګه چه ئې اوفرمائیل چه مونږبه دوی ته ددنیاپه هره حصه کښې په خپله ددوی دځانونوکښې خپلې نخښې نخښانې دومره اوښایوچه په دوی باندې حق ظاهرشی.په بل

ځائې کښې ارشاددې.اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ الخ.ایادوی بغیردڅه څیزنه پیداکړې شوې دی یادوی په خپله د خپل ځان خالق دی.هیڅ نه دی بې یقینه خلق دی.داالله تعالی شان دې چه څوك اوغواړی عذاب ورکړی اوپه چاچه اوغواړی رحم اوکړی.هغه حاکم دې دقبضې واله دې څه چه غواړی اوکومه اراده کوی جاری کوی څوك دهغه دحکم منلونه انکارکولې نه شی.څوك دهغه اراده بدلولې نه شی.څوك دهغه نه اخوادیخواتختیدې نه شی.څوك دهغه نه سوال نه شی‌کولې،هغه په ټولوباندې غالب دې، د چانه چه اوغواړی تپوس کولې شی ټول دهغه په قبضه کښې دی اودهغه ماتحت دی.دمخلوق خالق او د حکم مالك هم هغه دې.هغه چه هرڅه اوکړل ټول په ټوله عدل دی.ځکه چه هم هغه مالك دې.هغه دظلم نه پاك دې.په حدیث شریف کښې دی چه که الله تعالی داووارو اسمانونووالو ته او داووارو زمکووالو ته عذاب ورکړی نوبیاهم هغه ظالم نه دې(¹)عذاب اورحم ټول دهغه څیزونه دی. ټول به دقیامت په ورځ د هغه طرف ته واپس کړې شی،هم دهغه په وړاندې به پیش کړې شی.په زمکه والوکښې اوپه اسمان والو کښې څوك هغه ته شکست ورکولې نه شی.بلکه په ټولوباندې هغه غالبه دې.هریودهغه دویرې نه رپیږی ټول دهغه ددرفقیران دی.اودهرچانه زیات غنی دې.ستاسوڅوك ولی اومددګاردهغه نه سوابل څوك نشته.دالله تعالی دایتونونه کفرکونکی دهغه سره ملاقات نه منونکی دالله تعالی درحمت نه محروم دی .دهغوی دپاره په دنیااوپه اخرت کښې دردناوغم نه ډك عذاب دې.

| فَمَا كَانَ |
| --- |
| پس نهٔ وو |
| نو د ............ |

(¹) ابی داؤد كتاب السنة باب فی القدر:٤٦٩٩ وسنده صحيح، ابن ماجه:٧٧، احمد:١٨٢/٥، بیهقی: ٢٠٤/١٠، ابن حبان: ٧٢٧.

جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا اقْتُلُوْهُ اَوْ حَرِّقُوْهُ فَاَنْجٰىهُ

جواب دقوم دابراهيم | مگر | دا چي وئيل ني | چي اووژنئ دي | يا اوسوزوئ دي|پس بچ کړو هغه لره

ابراهيم ﷺ دقوم دطرفنه صرف دا يو جواب وو | چي دي مړ کړئ يا ني اوسوزوئ | مگر الله ﷻ هغه د

اللّٰهُ مِنَ النَّارِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۲۴﴾

الله | دوور نه | بيشکه | په دې کښې | خامخا نښې دي | دپاره دهغه قوم | چي ايمان راوړي

اور نه بچ کړو | بيشکه په دې (بچ کولو) کښې دمومنانو دپاره ډيرې نخښې دي

وَقَالَ اِنَّمَا اتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْثَانًا ۙ مَّوَدَّةَ

اواووئيل ابراهيم | بيشکه | نيولي دي تاسو | بي د الله نه | بتان | ذريعه دمحبت

او ابراهيم ﷺ اووئيل چي تاسو چې د الله نه سوا د خپلو ځانونو دپاره کوم بتان نيولي دي | نو دا

بَيْنِكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكْفُرُ

په خپل منځ کښې | په ژوند ددنيا کښې | بيا به | په ورځ دقيامت | انکار کوی |

په دنيا کښې ستاسو په خپل مينځ کښې دمينې محبت ذريعه ده | خو بيا به د قيامت په ورځ

بَعْضُكُمْ بِبَعْضٍ وَّيَلْعَنُ بَعْضُكُمْ بَعْضًا ۫

ځيني له تاسو | دځينو نه | او لعنت به وائي | ځيني له تاسو | په ځينو باندې|

د يوبل مخالف شئ | ..........او تاسو به په يو بل لعنتونه وايئ

وَّمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۵﴾ ۙ

او ځائې داوسيدو ستاسو | وور دي | او نشته تاسو لره | هيڅوك دمدد گارانو نه |

اوستاسو د اوسيدو ځائي به دوزخ وی | او هيڅوک به درسره مدد کونکې نه کوی |

**قوله تعالى:- فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ**

**دنمرود اور او ابراهيم ﷺ** :دابراهيم ﷺ دې عقلي اونقلي دلائيلووعظ هم په هغوی باندې اثراونه کړو، او هغوی دلته هم دخپل هم هغې دزړه دسختيامظاهره اوکړه.جواب خودهغودليلونوورکولې نه شو لهذا پخپل طاقت سره ئې حق دباوهلو،اوخپل طاقت سره ئې دربنتياؤ مخ نيوې کولو،وې وئيل چه يوکنده اوکنئ اوپه هغې کښې اوربل کړئ اودې په اورکښې واچوائ،چه اوسوزی.ليکن دالله ﷻ ددوی مکر هم په دوی باندې التاکړو.ترمودومودوپورې ئې لرگي راجمع کول،اويوه کنده ئې اوکنيسته اودهغې گير چاپيره ئې يوديوال اوکړاوپه هغې کښې لرگوټه.اوروړته کړو،کله چه دهغې شغلې تر اسمان اورسيدې او دومره زيات اوربل شوچه په زمکه ددې نه ځکښې دومره اوړچرته ليدې شوې نه وو،نوابراهيم ئې په کپره کښې اوتړلواوپه منجنيق کښې ئې واچولواوتالئ ورکولو سره ئې په اورکښې ورگزارکړو.ليکن الله ﷻ هغه په خپل خليل باندې باغ اوبهارجوړکړو.دوی ځوورځې پس دهغې نه صحيح سلامت راووتو،دااوددې په شان قربانئ وې چه دهغې په وجه ده ته د امامت منصب ورکړې شو.خپل نفس د خپل رحمان دپاره،خپل بدن دنيزان دپاره اوخپل اولاددقربانئ دپاره اوخپل مال دفيضان دپاره پيش کړو،هم دغه وجه ده چه ددنيا دټولو د ينونو واله ددوی سره محبت کوی.الله تعالى اورددوی دپاره باغ جوړکړو،په دې واقعه کښې دايماندارودپاره دقدرت الهی ډيرې نشانې دي.

**قوله تعالی:- مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا**

**بت پرستي او شرک دنيا کښې د کافرانو په مينځ د محبت ذريعه وي:-** دوی خپل قوم ته اوفرمائيل چه کومو بتانو نه تاسومعبودان جوړکړي دی داستاااتفاق د دنياترحده پوري دي.(مودة) دزبرسره مفعوله له دې.په يو قرات کښې دپيش سره هم دې.يعنی ستاسودبت پرستی ګوچه په دنياکښې به محبت حاصل کړی خو د قيامت په ورځ به معامله ددې التباشي او د محبت په ځائې به نفرت اوداتفاق په ځائې اختلاف پيدا شي.ديوبل سره به جهګړې کوئ په يوبل به الزامونه لګوئ ،په يوبل به لعنت ورليږئ،هره ډله به په بلې ډلې باندې لعنت ورليږي.ټول دوستان به دشمنان جوړشي.اوپرهيزګاراونيکوکارنن هم د يوبل خيرخواه اودوستان به وي.کافران به ټول په ټوله دقيامت په ورځ ډغرې خوری اوپه اخره کښې به جهنم ته پريوځی.څوك به دومره نه وی چه ددوی څه قسمه مدداوکړي شي.په حديث کښې دی چه الله ﷻ به ټول مخکينی اوروستنی په ميدان کښې راجمع کړی.چاته پته لګی چه په دواړوطرفونوکښې د کوم طرف نه دې؟ام هانی ؓ چه دحضرت علی ؓ خورده جواب ورکړوچه الله تعالی اودهغهٔ رسول ﷺ د زيات علم واله دې.بيابه يواعلان کونکې د عرش دلاندې اعلان اوکړی چه اې موحدينو! دتوحيدواله دې سراوچت اوکړی.بيابه هم دغسې اواز اوکړی بيابه په دريم ځل هم دغسې اوازاوکړی اوابه وائی چه الله تعالی ستاسوټولې غلطئ معاف کړلې،اوس به خلق اودريږی اوپه خپلوکښې دجنګ جهګړولين دين اومطالبې به کوی.نودالله تعالی وحده لاشريك دطرف نه به اوازاوشي چه داهل توحيد تاسو په خپل مينځ کښې يوبل بالکل معاف کړئ نوتاسوته به الله تعالی بدله درکړی.(۱)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاٰمَنَ | | | | | | | |
| پس اومنو | | | | | | | |
| . ...... نو | | | | | | | |
| لَهٗ | لُوْطٌ | وَقَالَ | اِنِّيْ | مُهَاجِرٌ | اِلٰى رَبِّيْ | اِنَّهٗ | |
| هغه لره | لوط | او اووئيل ابراهيم | بيشکه زهٔ | هجرت کونکې يم | رب خپل ته | بيشکه هغه | |
| لوط ؑ دهغهٔ تصديق اوکړو او ابراهيم ؑ اووئيل چې زهٔ د خپل رب دپاره وطن پريږدم \| هغه | | | | | | | |
| هُوَ | الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ ۝ | وَوَهَبْنَا | لَهٗ | اِسْحٰقَ | وَيَعْقُوْبَ | |
| هم هغه | غالب دی | حکمت والا دی | او ورکړل مونږه | هغه لره | اسحاق | او يعقوب | |
| غالب او صاحب دحکمتونو دی \| اومونږ هغه ته ځوئې اسحاق او (نمسی) يعقوب ؑ ورکړو | | | | | | | |
| وَجَعَلْنَا | فِيْ ذُرِّيَّتِهِ | النُّبُوَّةَ | وَالْكِتٰبَ | وَاٰتَيْنٰهُ | | | |
| او جاری اوساتله مونږه | په اولاد دهغوئ کښې | سلسله دپيغمبرئ | او دکتاب | او ورکړومونږ هغه ته | | | |
| او د هغه په اولاد کښې مو دپيغمبرئ او دکتاب سلسله جاری اوساتله \| او هغه ته مو په | | | | | | | |
| اَجْرَهٗ | فِي الدُّنْيَا | وَاِنَّهٗ | فِي الْاٰخِرَةِ | لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ | | | |
| اجر دهغه | په دنيا کښې | او بيشکه هغه به | په اخرت کښې | خامخا دصالحانونه وی | | | |
| دنيا کښې لوئې اجر ورکړو او په اخرت کښې به هم په نيکانو خلقو کښې شمير وی | | | | | | | |

(۱) مجمع الزوائد ۲۵۸/۱۰.

**قوله تعالى:- فَآمَنَ لَهُ لُوطٌ**

**حضرت ابراهيم عليه السلام او حضرت لوط عليه السلام:-** ونيلي شي چه حضرت لوط عليه السلام د حضرت ابراهيم عليه السلام وراره وو. لوط بن هارون بن ازر. ددوى د ټولو قوم نه يو خو حضرت لوط عليه السلام ايمان زاوړې وواويوه حضرت ساره رضي الله عنها چه ددوى ښځه وه، په يو روايت كښې دى چه كله دد ښځه هغه ظالم بادشاه د خپلو سپاهيانو په ذريعه خپلې خواته راوبلله، نو حضرت ابراهيم عليه السلام ونيلي ووچه ګوره ما په خپله رشته ستاسره د رورخورونيلي ده، ته هم د غه وانيه، ځكه چه په دې وخت كښې په دنيا كښې زما او ستانه علاوه بل هيڅوك مومن نشته[1] نو ممكنه ده چه ددې نه مراد داوى چه هيڅ يو ښځه خاوند زمونږ نه علاوه ايماندار نشته. حضرت لوط عليه السلام په دوى باندې ايمان خوراوړلي وومګر دغه وخت كښې نې هجرت كړې وواوشام ته تلې وو. او بيا د اهل سدوم طرف ته نبى جوړ كړې شوې اوليږلې شوې وو. ځكه چه بيان تيرشوا ومخكښې به راشى. د هجرت اراده ياخو حضرت لوط عليه السلام ظاهره كړله ځكه چه د ضمير مرجع اقرب خو هم دغه ده. حضرت ابراهيم عليه السلام ځكه چه د ابن عباس رضي الله عنهما او ضحاك رح بيان دې نو ګويا د لوط عليه السلام د ايمان راوړلو نه پس دوى د خپل قوم نه لاس وينځلې وواو خپله اراده نې ظاهره كړه چه چرته لاړشم كيدېشي چه د هغه ځاى خلق د الله تعالى والله جوړشي. عزت د الله تعالى او د هغه د رسول او د مومنانو دې. د حكمت واله اقوال او افعال تقدير شريعت د الله تعالى دى. قتاده رحمه الله فرمائى چه دوى د كوفي نه هجرت او كړو او ملك شام طرف ته لاړل.

**د قيامت د راتلو په وخت كښې به هم ټول خلق شام ته جمع كيږى:-** په حديث كښې دى چه د هجرت نه پس هجرت د حضرت ابراهيم عليه السلام د هجرت ګاه طرف ته وى. دغه وخت كښې به په زمكه باندې بدترين خلق پاتې شى. كوم چه به زمكه اوتوكى. او الله ﷻ به د هغوى نه نفرت كوى. او اور به هغوى لره د بيزو ګانو او خنزيرانو سره زغلوى. د شپې اوورځې به هغوى سره وى اوددوى نه غورځيدونكى به خورى[2] په بل روايت كښې دى چه څوك په دوى كښې روستو پاتې شى هغوى به دا اور اوخورى. او د نمر خاته نه به څه خلق زما په امت كښې داسې راوځى چه قران به وانى خو د هغوى د مرې نه به ښكته نه ځى، او د هغوى ديوې ډلې د ختميدو نه پس به بله ډله اودريږى. تردې پورې چه حضور ﷺ د شلو ځلو نه زيات داسې بار بار اوفرمائيل. تردې پورې چه ددوى په اخرى ډله كښې به دجال راوځى. د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما بيان دې چه يوه زمانه خو په مونږ هغه وه چه مونږ به ديو مسلمان رور د پاره درهم او دينار هيڅ ځيز نه ګڼړلو. ([3]) او خپل دولت به مو د خپل رور ګڼړلو، بيا هغه زمانه راغله چه دولت مونږ د خپل مسلمان رور نه زيات ګران معلوم شولو. ما د حضور ﷺ نه اوريدلي دى چه كه تاسو د غويانو لكوېسې شاته اولګئ او په تجارت كښې مشغول شئ او د الله تعالى د لارې جهاد پريږدئ نو الله ﷻ به ستاسو په ځټونو كښې د ذلت پټئ واچوى. چه د هغه وخت پورې به ستاسو نه بيليږى نه ترڅو پورې چه تاسو واپس هغه ځاى ته راغلى نه ئې چه چرته وېئ. او توبه مونه وى كړې. بيائې هم هغه حديث بيان كړو چه پورته تيرشو، اووې فرمائيل چه زما په امت كښې به داسې كسان وى چه قران به لولى او بد عملئ به هم كوى. قران پاك به ددوى د تالونه نه كوزيږى. د هغوى علمونو چه تاسو اووينئ نو تاسو به خپل علمونو كمتر او ګنړئ. هغوى به د اهل اسلام وژنى. پس كله چه دا خلق ظاهر شى نو تاسو دوى قتل كړئ بيا به راوځى بيائې مړه كړئ، بيا چه ظاهر شى بيائې قتل كړئ. هغه هم خوش نصيبه دې چه دوى قتل كړى او هغه هم خوش نصيبه دې چه چه ددوى د لاسه قتل

---

[1]) صحيح بخارى كتاب حديث الانبياء باب ﴿واتخذ الله ابراهيم خليلا﴾: ۳۳۵۸، صحيح مسلم: ۲۳۷۱.

[2]) الطبرى: ۲۶/۱۰.

[3]) ابوداوٗد كتاب الجهاد باب في سكنى الشام ۲٤۸۲ مختصرًا وهو حسن، احمد: ۲/۱۹۸-۱۹۹.

شي.كله چه به ددوی دلې راوخی نوالله تعالی به دوی برباد کړي.بیابه راوخی بیابه نې بربادشي.هم دغه شان حضورﷺدشلوخله یاددې نه زیات ځله هم دغه اوفرمائیل.(١)

قوله تعالی:-وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ

مونږابراهیمؑ ته داسحاق دنوم یوخوې ورکړې وو،اواسحاق ته مودیعقوب دنامې،څنګه چه فرمان دې چه کله خلیل الرحمانؑخپل قوم اودهغوی معبودان پریښودې وونوالله تعالی هغوی ته اسحاقؑاو یعقوبؑ ورکړې وو.اوهریونې نبی جوړکړو.په دې کښې دااشاره هم ده چه نمسي به هم ستاپه موجودګئ کښې اوشي.اسحاق خوې وواونمسي زیاتی وو.په بل ایت کښې دی چه مونږ د ابراهیمؑ ښځېؓته داسحاق اودهغهٔ نه روستودیعقوبؑزیرې ورکړو،اووې فرمائیل چه دقوم دپریښودوپه بدله کښې الله تعالی به ستادکورنئ ته داکلې ورکړې چه ستاسترګې به ورسره یخې وی.پس ثابته شوه چه حضرت یعقوبؑدحضرت اسحاقؑخوې وو.هم دغه دسنت هم ثابت دی.دقران پاك په بل ایت کښې دی چه ایاتهٔ هغه وخت موجودوې کله چه دحضرت یعقوبؑد مرګ وخت رانزدې شو نو خپلو خامنوته نې اوفرمائیل چه تاسوبه زمانه پس دچاعبادت کوئ؟هغوی ورته اووئیل چه ستا او ستا د پلار د حضرت ابراهیمؑ،اسماعیلؑ،اسحاقؑ،دالله چه یودې اووحده لاشریك دې.دبخاری اومسلم په حدیث کښې دی چه کریم بن کریم بن کریم یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم دې.علیهم الصلواة والسلام.(٢)

دیوې شبهې ازاله:-دابن عباسؓنه چه کوم روایت دې چه اسحاقؑاویعقوبؑدحضرت ابراهیمؑ خامن وو،ددې نه مراددخوی ته خوې ونیل دی.دانه چه صلبی خامن دواړه وو.ابن عباسؓ خو پرېږده چه یوادنی کس هم داسې غلطې نه شي کولې.مونږ په خپل اولادکښې کتاب اونبوت کیښودو، دخلیل خطاب هغهٔ ته ملاوشو.امام هغهٔ ته اوونیلې شواودهغهٔ نه پس دهغهٔ په نسل کښې نبوت او حکمت پاتې شو.دبنی اسرائیلوټول نبیان دحضرت یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم دنسل نه دی.دحضرت عیسیٰؑپورې خوداسلسله هم دغسې روانه وه،دبنواسرائیلودې اخری پیغمبرخپل امت ته صفااوونیل چه زهٔ تاسوته د نبی عربی قریشی،هاشمی خاتم الرسل سیداولادادم زیرې درکوم.کوم چه الله تعالی خوښ کړې دې.حضورﷺدحضرت اسماعیلؑدنسل نه وو،دحضرت اسماعیلؑپه نسل دحضورﷺنه علاوه بل څوك نبی رانغې،علیه افضل الصلواة والتسلیم.مونږ هغوی ته ددنیاثواب هم ورکړواوداخرت نیکئ موهم ورکړې.په دنیاکښې فراخه رزق،پاکه اوښکلې بی بی،اوذکرحسن موورکړو،اودټولې دنیاپه زړونوکښې موستامینه واچوله،باوجوددې چه دخپل اطاعت توفیق موورځ په ورځ زیات درکړو، دکاملې فرمانبردارئ دتوفیق سره سره ددنیاټولې ښکیرې مودرکړلې،اوپه اخرت کښې موپه صالحانوکښې اوساتلې،څنګه چه فرمان دې،ابراهیمؑدفرمانبرداروډلې نه وو،موحدوواود مشر کانو نه وو،اوپه اخرت کښې دښوخلقوملګرې شو.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْفَاحِشَةَ | لَتَأْتُوْنَ | اِنَّكُمْ | لِقَوْمِهٖٓ | قَالَ | اِذْ | وَلُوْطًا |
| بې حیایئ ته | اکاردبې | ورځئ | تاسوا خامخا | ایشکه | ته | قوم خپل | هغه | اوونیل | کله چې | لوط | اواولیږو مونږ |
| او لوط مو پیغمبر کړو څه وخت چې هغه خپل قوم ته اوونیل آیا تاسو داسې د بې حیایئ کار کوئ | | | | | | | |

١) احمد:٨٤/٢ ج ٥٥٦٢.
٢) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء (ام کنتم شهداء........):٣٣٨٢.

مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ

چې نه دي ړومبي شوي ستاسو نه | په كولو ددې كار كښې | يو كس (هيڅوك) | دخلقو نه

چې ستاسو نه وړاندې (په ټوله دنيا كښې) بل هيڅ چا نه دي كړي ؟

اَئِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِيْلَ

آيا تاسو چې يئ | خامخا ورځئ | نارينوته (په شهوت سره) | او شو كوئ | لار

تاسو د نارينوؤ سره بد فعلي (لواطت) كوئ | اولارې شوكوئ | او په ډک مجلس كښې نا مناسب

وَتَاْتُوْنَ فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ فَمَا كَانَ

او راځئ تاسو (يعنى كوئ تاسو) | په مجلسونو خپلو كښې | بد كارونه | پس نه وو

كارونه كوئ | ..............نو هغه د قوم جواب بس صرف دا وو | چې ځه

جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتَ

جواب دقوم دهغه | مګر | دا چې ووې وئيل | راوله په مونږ باندې | عذاب دالله | كه ئې ته

(لاړ شه) ته د الله ﷻ عذاب راوله (هغه عذاب د كوم چې ته مونږ سره وعده كوې) | كه چرې ته

مِنَ الصّٰدِقِيْنَ قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ عَلَى الْقَوْمِ

دربښتينو خلقو نه | اووئيل لوط | اے ربه زما | امداد اوكړه زما | په قوم

ربښتونئ يئ | ............لوط ﷺ دعا اوكړه چې ائې زما ربه ته ددې فسادیانو په مقابله كښې

الْمُفْسِدِيْنَ

مفسدانو باندې |

زما مدد اوكړه |

**قوله تعالى:- وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ**

**دلوطيانومشهوربدعادات:** دلوطيانودمشهوربدعادتونو نه به لوط ﷺ هغوى منع كول.چه د ستاسو په شان بدعادت خوستاسو نه مخكښې چاپيژندوهم نه.كفراوتكذيب اودرسولانومخالفت خو خير نوروخلقو هم كولو خودسړونه خپل حاجت پوره كول خوچاهم نه ووكړې. دويم بدعادت په هغوى كښې داوو،چه لارې به ئې شوكولې،ډاكې به ئې اچولې،قتل اوفسادبه ئې كولو،مالونه به ئې لوټ كول،په مجلسونوكښې به ئې على الاعلان بدې خبرې اوخراب حركتونه كول.څوک چانه منع كول،تردې پورې چه دبعضوقول دې چه هغوى به لواطت هم على الاعلان كولو.ګويا دسوسائټئ يوه مشغله داهم وه چه هوابه ئې خارج كړه نوخندل به ئې(١) ګډان به ئې جنګول ، چرګان به ئې جنګول،اوبدترين بدئ به ئې كولې،اودهرچاپه وړاندې به ئې غلط كارونه ښه په خوند خوندكول.په يوحديث كښې دى چه څوک به په لاره تلل نوبه هغوى پسې به ئې اوازونه كول،په كانړوبه ئې ويشتل كول(٢) اوشپيلى به ئې وهل، كونترې به ئې ساتلې،برېنډيدل به،كفر،دشمنى،سركشى، ضد اوپه خپله خبره ټينګيدل ئې تردې حدپورې زيات

(١) الطبرى:٣٠/٣٠.

(٢) ترمذى كتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورة العنكبوت:٣١٩٠،احمد:٢٤١/٦،حاكم:٤٠٩/٢.

شوې ووچه دنبي په پوهولوباندې ني اوونيل چه خه خه نصيحت پرېږده ته چه مونږ دكوموعذابونونه ويروې،هغه راوله،نومونږ به هم ستاربنتيااووينو.كله چه حضرت لوط عاجزه شونودالله تعالى په وړاندې ني لاسونه خوارهٔ كړل چه په دې مفسدانوباندې ماته غلبه راكړه اوزمامدداوكړه.

وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَآ إِبْرٰهِيمَ بِالْبُشْرٰى

| او كله چي | راغلل | استاذي زمونږه | ابراهيم ته | دزيرى سره

| اوڅه وخت چي زمونږ فرښتو ابراهيم ته د(خوښې پيدا كيدو) زيرې وركونكي راغلي

قَالُوٓا إِنَّا مُهْلِكُوٓا أَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ إِنَّ أَهْلَهَا

نو اوونيل هغوئ| مونږه هلاكونكي يو | خلق | ددې كلي | بيشكه چي | خلق ددې كلي

نو دائي هم ورته اوونيل چي مونږ خو د دغې كلي تباه كونكي يو | ځكه چي دغه خلق دير

كَانُوا ظٰلِمِينَ قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطًا قَالُوا

دي | ظالمان | اوونيل ابراهيم | بيشكه | په هغه كلي كښي | لوط دې | اوونيل هغوئ

بدعمله دي | ابراهيم ورته اوونيل هلته خو لوط اوسيږى | ............ هغوئ اوونيل

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَنْ فِيهَا لَنُنَجِّيَنَّهُ

مونږ ته ښه علم دې | په هغه چا | چي په هغې كښي دى | خامخا به بچ كړو مونږ هغه لره |

په هغې كښي چي څوك دي هغه مونږ ته ښه معلوم دى | ............ مونږ به لوط او د

وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِينَ وَلَمَّا

او(ټول)كوروالا دهغه لره | سوا دښځې دهغه نه | چي ده هغه | دروستو پاتي كيدونكونه | او كله چي

د هغه دكور خلق ضرور بچ كړو| خوصرف ښځه به ئې په پاتې كيدونكو كښې وى | اوهركله

أَنْ جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ

راغلل | استاذي زمونږه | لوط ته | نو سخت پريشانه شو | په ورتلو دهغوئ | او تنګ شو

چي لوط ته زمونږ فرښتې راغلې | ....... نو هغه پرې غمژن شو| ............ او (دهغوى په راتلوني)

بِهِمْ ذَرْعًا وَقَالُوا لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ إِنَّا

په هغوئ باندې|په لحاظ دزړه سره|اوونيل هغوئ | مهٔ يريږه | اومهٔ غمژن كيږه |بيشكه مونږه

زړه تنګ شو | ......... او فرښتو اوونيل چي ته ويريږه مه | او غم مه كوه | ...... ......مونږ

مُنَجُّوكَ وَأَهْلَكَ إِلَّا امْرَأَتَكَ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِينَ

بچ كونكي يو تالره | او كوروالا ستا لره | سوا دښځې ستانه | ده هغه | دروستو پاتې كيدونكو نه

به تا اوستا دكور خلق ضرور بچ كړو|خو صرف ستا ښځه چي د روستو پاتې كيدونكو نه به وى

إِنَّا مُنْزِلُونَ عَلٰٓى أَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ

بيشكه مونږه | نازلونكي يو | په خلقو | ددې كلي باندې | عذاب د اسمان نه

(مونږددې كلي په خلقو باندې د پورته نه عذاب راكوزونكي يو|اودا مونږ دوى سره څه ظلم نه كوو بلكه)

بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ۝ وَلَقَدْ تَّرَكْنَا مِنْهَآ

په سبب دهغې | چې دي دوئ | چې فسق (بدکاري) کوي | او پريښودي ده مونږ | دهغه کلي نه

په دې وجې چې دوی بدعملي کوي| ..................اومونږ د دغې تباه شوی کلي څه ښکاره

اٰيَةً بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ۝

يوه ښښه ښکاره |دپاره دهغه خلقو| چې دعقل نه کار اخلي: |

نخښې دعقل مندو دپاره تراوسه پورې پريخودي دی |

**قوله تعالى:- وَلَمَّا جَاۤءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى**

**دلوط ﷺ دقوم تباهي اوبربادي:** کله چه دلوط ﷺ اونه منلې شوه نو هغوی دالله تعالى مدد اوغوښتو، چه د هغې باندې فرښتې راوليږلې شوې.دانسان په شکل کښې اول دافرښتې دميلمنوپه شکل کښې اول دحضرت ابراهيم ﷺ کورته راغلې.دوی دميلمستيا سامان تيارکړو،اودهغوی په وړاندې ئې کيښودو، کله چه ئې اوکتل چه هغوی دې طرف ته څه رغبت نه کوی نوپه زړۀ کښې اوويريدو،نوفرښتودده زړۀ خوشحالول شروع کړۀ اوده ته ئې خبرورکړوچه ددۀ کره به يونيك بچې پيداکيږی ساره ﷺ هم هلته موجود وه،چه دانې واوريدل نوحيرانه شوه ،څنگه چه دسوره هود او د سورة حجرپه تفسيرکښې تيرشوې دی. اوس ورته فرښتوخپله اصلی اراده ظاهره کړه،چه دهغې په اوريدوسره دخليل الرحمان خيال راغې چه کۀ دې خلقوته لږ شان نورهم مهلت ورکړې شی نوکيدې شی چه دوی په نيغه لاره راشی.ددې وجې نه ئې ورته اوفرمائيل چه هلته خولوط نبی(ﷺ)شته،فرښتوورته جواب ورکړوچه مونږ دهغوی نه غافله نه يومونږ ته حکم شوې دې چه هغه اودهغۀ خاندان واله بچ کړو.اوبې شکه دهغۀ ښځه به هلاکيږی.ځکه چه هغه دخپل قوم په کفرکښې دهغوی ملګرتياکوی.دلته نه چه رخصت شودبلوغ ته دنزدې هلکانوپه صورت کښې لوط ﷺ ته ورغلل.ددوی په ليدوسره لوط ﷺ په پريشانئ کښې پريوتو چه کۀ دخان سره ويساروم نوددوی نه په خبروسره به کافران په منډومنډوراشی اومابه هم تنګ کړی.اودوی به هم پريشانه کړی.اوکه دخان سره ئې نه ويساروم نودوی به هغوی ته لاسوکښې ورشی،دې دخپل قوم د عادت نه خبروو،ددې وجې نه خفه اوغمژن شو.خوفرښتودده داخفګان لرې کړو،چه ويريږه مۀ،اومه خفه کيږه مونږ خودالله ﷻ فرښتې يو.ددوی دبربادئ دپاره راغلې يوتۀ اوستاخاندان ستادښځې نه بغير خويه بچ شئ باقی په دې تولوبه اسمانی عذاب راځی.اودوی ته به ددوی دبدکارئ نتيجه اوښودلې شی.بياحضرت جبرائيل ﷺ دغه کلی په خپلووزروکښې اوچت کړل.اوداسمان پورې ئې اوچت کړل، او د هغۀ ځائې نه ئې التا کړل، او بياپه هغوی باندې ئې دهغوی دناموکانړی راوورول.اوکوم دالله تعالى عذاب چه هغوی لرې ګڼړلو،هغه ډير نزدې راووتو،اوددوی دکلوپه ځائې کښې دترخواوبدبوداره اوبو يو ډنډپاتې شو.چه دخلقودپاره دعبرت حاصلولويوه زريعه جوړه شوه،اوعقل مندخلق چه داظاهری نښانات اووينی اوپه داسې بدې طريقې سره هلاکت اووينی نودالله ﷻ په نافرمانوباندې زړه ورتيانه کوی.دعرب په سفرکښې شپه ورځ دانظاره دهغوی په وړاندې وه

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ

| او مدين ته (اوليږو مونږه) | رور دهغوئ

| اودمدين خلقو ته مود هغوئ (قومي) رور

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شُعَيْبًا | فَقَالَ | يٰقَوْمِ | اعْبُدُوا اللّٰهَ | وَارْجُوا | الْيَوْمَ |
| شعيب | پس اووئيل هغه | اے زما قومه | بندګي کوئ دالله | او اميد لرئ | دورځي |

شعيب ليږلي وو | نوهغه ورته اووئيل چې اې زما قومه تاسو دالله ﷻ عبادت کوئ | او د اخرت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْاٰخِرَ | وَلَا تَعْثَوْا | فِي الْاَرْضِ | مُفْسِدِيْنَ۝ | فَكَذَّبُوْهُ | |
| اخري | اومه جوړيږئ | په زمکه کښې | فسادکونکي | پس هغوئ دروغ اوګڼړو هغه | |

د ورځې اميد ساتئ | او په ملک کښې فساد مه کوئ | نوهغوئ شعيب ﷺ دروغژن اوګڼړلو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاَخَذَتْهُمُ | الرَّجْفَةُ | فَاَصْبَحُوْا | فِيْ دَارِهِمْ | جٰثِمِيْنَ۝ |
| پس راااونيول هغوئ | يوې سختې زلزلې | پس شو هغوئ | په کور خپل کښې | مړه پرمخې پراته |

نوزلزلې راګير کړل | ..........................اوهغوئ سحر په خپلو کورونو کښې پرمخې پراته وو

**قوله تعالى:- وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا**

**ذ اهل مدين حال:**-دالله بنده اودهغهٔ ربنتوني رسول شعيب ﷺ په مدين کښې خپل قوم ته وعظ اوکړو، هغوی ته ئې دالله وحده لاشريکه له دعبادت حکم ورکړو.هغوی ئې دالله تعالى د عذابونو اوسزاګانو نه اوويرول.هغوی ته ئې دقيامت دراتلويقين ورکړو،چه دهغې ورځې دپاره تياري اوکړئ.اودهغې ورځې خيال اوساتئ اوپه خلقو باندې ظلم زياتې مهٔ کوئ.دالله تعالى په زمکه باندې فسادمهٔ کوئ او د بدو نه ځان ساتئ.په هغوی کښې يوعيب داهم ووچه په ناپ تول کښې به ئې کمې کولو.اودخلقو حقونه به وهل اوډاکې به ئې اچولې.لارې به ئې بندولې.اوورسره به دالله تعالى اودهغهٔ نه رسول نه انکار کولو. هغوی دخپل پيغمبرنصيحتونوته غوږنه کيښودوبلکه هغهٔ ته ئې دروغژن اووئيل.ددې په وجه په هغوی باندې دالله تعالى عذاب راغې،سخته زلزله راغله اوورسره دومره تيزاوازهم راغې چه دهغوی زړونه والوتل.اوروحونه ترې اووتل.اوپه لږساعت کښې هرڅه ختم شو.ددوی پوره قيصه په سوره اعراف او په سوره شعراء کښې تيره شوې ده.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَعَادًا | وَّثَمُوْدَ | وَقَدْ تَّبَيَّنَ | لَكُمْ | |
| او عاديان | او ثموديان (مونږ هلاک کړل) | او ښکاره شوې دې | تاسو ته (هلاکت دهغوئ) | |

اوعاديان اوثموديان مو هلاک کړل | اود هغوی تباهي تاسو ته د هغوی د کورونو نه ښکاره ده

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ مَّسٰكِنِهِمْ | وَزَيَّنَ | لَهُمُ | الشَّيْطٰنُ | اَعْمَالَهُمْ |
| دکورونو دهغو نه | او ښائيسته ښکاره کړل | هغوئ ته | شيطان | عملونه دهغوئ |

(چې تش کنډرات پراته دی) | اوشيطان هغوی ته د هغوی بد عملونه ښائسته کړی وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَصَدَّهُمْ | عَنِ السَّبِيْلِ | وَكَانُوْا | مُسْتَبْصِرِيْنَ۝ | وَقَارُوْنَ | |
| پس منع ئې کړل هغوئ | دنيغې لارې نه | اوؤ هغوئ | ښه نظر والا (عقل فکر والا) | او قارون | |

نوهغوئ ئې د نيغې لارې نه منع کړی وو | حالانکه چې هغوئ ډير هوښياران وو | ..........او قارون

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَفِرْعَوْنَ | وَهَامٰنَ | وَلَقَدْ جَآءَهُمْ | مُّوْسٰى | بِالْبَيِّنٰتِ | |
| او فرعون | او هامان مونږ هلاک کړل | او راغلې ووَ هغوئ ته | موسى | دښنو ښکارو سره | |

او فرعون اوهامان مو هم هلاک کړی وو | او هغوئ ته موسى ﷺ په ښکاره نخښنو سره راغلې وو

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَاسْتَكْبَرُوْا | فِي الْاَرْضِ | وَمَا كَانُوْا | سٰبِقِيْنَ ۝ |

پس تکبر اوکړو هغوئ | په زمکه کښې | حال داچې نۀ وو هغوئ | وړاند وتونکي (زمونږ نه) |
خو هغوئ په زمکه (د مصر) کښې تکبر اوکړوا اوهغوئ زمونږ د عذاب نه بچ نشو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَكُلًّا | اَخَذْنَا | بِذَنْۢبِهٖ ۚ | فَمِنْهُمْ | مَّنْ | اَرْسَلْنَا |

پس هريو | راانيوو مونږه | په ګناه دهغه سره | پس خيني دهغوئ نه | هغه څوك دي | چې اوليږله مونږه
نو مونږ ټول د هغوئ دګناهونو په وجه اونيول | نو په بعضو باندې مو (په کښې)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | حَاصِبًا ۚ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ | اَخَذَتْهُ |

په هغه باندې | هواكانړي ورونكي | او خيني دهغوئ نه | هغه څوك دي | چې اونيوۀ هغه لره
كانړي اوورول | ......................................او بعضې په کښې يوې چغې راونيول

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الصَّيْحَةُ ۚ | وَمِنْهُمْ | مَّنْ | خَسَفْنَا | بِهِ | الْاَرْضَ ۚ |

يوې سختې چغې | او خيني دهغوئ نه | هغه څوك دي | چې ننيښسته مونږه | هغه | په زمكه
......................................اوبعضې مو په کښې په زمکه ورخخ کړل .......................................

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمِنْهُمْ | مَّنْ | اَغْرَقْنَا ۚ | وَمَا كَانَ اللّٰهُ |

او خيني دهغوئ نه | هغه څوك دي | چې غرق (ډوب) كړل مونږه | اونه وو الله |
اوبعضې مو په کښې غرق کړل | ...................... اوالله ﷻ په هغوئ ظلم نه وو

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِيَظْلِمَهُمْ | وَلٰكِنْ كَانُوْا | اَنْفُسَهُمْ | يَظْلِمُوْنَ ۝ |

چې ظلم ئې كړې دې په هغوئ باندې | وليكن وو هغوئ | په ځانونو خپلو باندې | چې ظلم ئې كولو
كړې | .........................بلکه هغوئ پخپله په ځانونو ظلم کړې دې

**قوله تعالى:- وَعَادًا وَّثَمُوْدَ**

**عاداوثمود قارون،فرعون اوهامان هم فنا شو:** عاديان دهود عليه السلام قوم وو.په احقاف كښې اوسيدل، چه ديمن په ښارونو كښې دموت سره نزدې دې.ثموديان دصالح عليه السلام قوم وو.دوى په حجركښې اوسيدل.چه دوادى القرى سره نزدې ده.دعربويه لاره كښې ددوى كلې راتلو.كوم چه هغوى ښه پيژندلو.قارون يومالداركس وو.چه دهغۀ دډكوخزانوچابيانې به يوې دلې ګرځولې.فرعون دمصربادشاه وو.اوهامان د هغۀ وزير اعظم وو.هم په دغه زمانه كښې حضرت موسى كليم الله نبى كړې شواوهغۀ طرف ته تلې وو.دا دواړه قبطى كافرو.كله چه ددوى سركشى دحدنه تيره شوه دالله تعالى دتوحيدنه منكر شو او رسولانوته ئې تكليفونه وركړل اودهغوى خبره ئې اونه منله،

**قوله تعالى:- فَكُلًّا اَخَذْنَا بِذَنْۢبِهٖ**

**په دوئ مختلف عذابونه راغلل:-** نوالله تعالى دوى په قسماقسم عذابونوسره هلاك كړل.په عاديانوئې هوا ګانې راوليږلې،هغوى په خپل طاقت اوقوت باندې ډيرنازيدل،څوك ئې په خپله مقابله هيڅ نه ګڼل، او هغوى ئې هواراوليږله چه ډيره زياته تيزه وه چه دزمكې كانړي ئې دځان سره اوچت كړل اوپه هغوى باندې ئې اوورول .اوپه اخره كښې ئې زورتردې حده پورې اورسيدوچه دوى به دځان سره اوچت كړل او اسمان پورې به ئې اوچت كړل اوبيابه ئې راغوزاركړل.سرئنكته به راګوزاريدل اوسربه ترې بيل شو.او

داسې به کيدل لکه دکجهورې اونې وی اوتنې ئې بيلې پرتې وی.اوځانګې ئې جداپرتې وی.په ثمود يانوياندې چه کله دالله ﷻ حجت پوره شواودلائل ورکړې شواودهغوې دغوښتنې مطابق چه کله د کانړی دهغوی په وړاندې اوښه راووته خوبياهم هغوی ته ايمان نصيب نه شوبلکه په سرکشئ کښې نور هم زياتيدل،دالله تعالى نبی حضرت صالح ﷺ ته ئې دهمکئ ورکولې اوهغه به ئې ويرولو،اودايمان والو ته ئې اوونيل چه زمونږ دښارنه اووځئ ګنې مونږ به تاسوسنګسارکړو.دوی په يوې چغې سره پاره پاره کړې شو.زړونه ئې دويرې نه راووتل اودتهولوروحونه والوتل.قارون سرکشی اوتکبراوکړو،دالله ﷻ نافرمانئ کولوسره سره ئې په زمکه کښې فساد جوړ کړو اوپه تکبرسره به ګرځيدواوخپل ځان ته ئې څه وئيل اوډيرپه غرورکښې شونوالله تعالى هغه سره د خپلومانړوپه زمکه کښې خښ کړواوتراوسه پورې لاخښيږی.فرعون هامان اودهغه ملګری دسحرپه وخت کښې په درياب کښې ډوب کړل.په هغوی کښې يو هم بچ پاتې نه شو.چه دهغوی نوم خوئې چرته اخستې.

قوله تعالى:- وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ

الله تعالى چه داهرڅه اوکړل په دوی هيڅ ظلم نه ووبلکه ددوی دظلم بدله وه.ددوی د بدعملو نتيجه وه. د دوی دکړوسزاوه،دابيان دلته بطورعبرت دې چه دنه منونکی امتونوذکراوشو،اوبيا په هغوی هر يوه لړه په عذاب سره دهلاکولوذکراوشو.چاوئيلې دی چه دټولونه مخکښې په چاچه د کانړو ورولوذکردې د هغوی نه مرادلوطيان دی.اوډوبيدونکې قوم دنوح ﷺ وو،خوداقول ټيک نه دې دابن عباس نه داهم روايت دې خوپه سندکښې ئې انقطاع ده.ددې دواړوقومونودهلاکت ذکرهم په دې سورت کښې په تفصيل سره بيان شوبياډيرې فاصلې نه پس دابيان اوشو.دقتاده نه داهم روايت دې چه دکانړوباران په چاوکړې شودهغوی نه مرادلوطيان دی.اوڅوک چه په چغې سره هلاک کړې شودهغې نه مراد د شعيب ﷺ قوم دی.خوداقول هم ددې ايتونونه ډيرلرې دی.والله اعلم.

<table>
<tr><td>مَثَلُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوْتِ ۚ</td></tr>
<tr><td>مثال داهغه خلقو | چې نيولی ئې دی | بې دالله نه | دوستان | پشان دمثال | دجولا دې |</td></tr>
<tr><td>کومو خلقو چې الله ﷻ پريخودې دې | اونور معبودان ئې جوړ کړی دی | د هغوئ مثال دجولاګی دې</td></tr>
<tr><td>اِتَّخَذَتْ بَيْتًا ۖ وَاِنَّ اَوْهَنَ الْبُيُوْتِ لَبَيْتُ الْعَنْكَبُوْتِ ۘ</td></tr>
<tr><td>چې جوړوی | يو کور | او بيشکه | ډير کمزورې دکورونو نه | خامخا کور دجولا دې |</td></tr>
<tr><td>چې هغه ځان دپاره يوه جاله جوړه کړی | اوپه کورونو کښې کمزورې کور د جولاګی کور دې</td></tr>
<tr><td>لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يَدْعُوْنَ</td></tr>
<tr><td>کاش چې وې دوئ | چې پوهيدلې | بيشکه الله | بنۀ پيژنی | هغه | چې دوئ ورته اواز کوی |</td></tr>
<tr><td>کاش ! چې هغوئ په دې خبره پوهيدلې چې بيشکه الله ﷻ ته هغه ټول څيزونه معلوم دی</td></tr>
<tr><td>مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ</td></tr>
<tr><td>بې دهغه نه | څه څيز | او هغه | غالب دې | او دحکمت خاوند دې | او دا مثالونه |</td></tr>
<tr><td>چې دوئ ئې دالله ﷻ نه بغير بلنه کوی | اوهغه دقدرت او د حکمتونو خاوند دې | اودا هغه مثالونه دی</td></tr>
<tr><td>نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ۝</td></tr>
<tr><td>بيانوؤ مونږه | دپاره دخلقو | اونۀ پوهيږی په دې باندې | مګر عالمان خلق |</td></tr>
<tr><td>چې مونږ ئې خلقو ته بيانوؤ | اوپه دې باندې هغه خلق پوهيږی | چې دپوهې خاوندان وی |</td></tr>
</table>

**قوله تعالى:- مَثَلُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ**

**په شرک باندې یوښه مثال:** کوم کسان چه دالله ﷻ رب العالمین نه علاوه دنوروعبادت اوبندګی کوی د هغوی دکمزورئ اوبې علمئ ذکرکیږی.اودهغوی نه دمدداوپه رزق کښې که سختئ راشی نودهغوی نه دمددطمع لرى.ددوی مثال داسې دې لکه چه یوجولاګې په خپله جاله کښې دباران اوګرمئ یخنئ نه پناه اخستل غواړی.که دوی ته پته وې نوخالق به نې نه پرېښودې اودمخلوق نه به نې څه طمع نه کوله. پس ددوی حال دایماندارودحال نه بالکل التهادې.هغوی یوه مضبوطه کړه نیولې ده اودوی د جولاګې په جاله کښې خپل سرونه پټ کړی دی.دهغه زړه دالله ﷻ طرف ته اووجودنې په نیکو عملونو کښې مشغول دې.اوددهٔ زړه دمخلوق طرف ته اوددهٔ بدن دهغه دعبادت طرف ته ښکته شوې دې.

**قوله تعالى:- اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ**

**تخویف ورکول مشرکانو ته:-** بیا الله ﷻ مشرکان ویروی چه هغه ددوی دشرک نه او ددرغو د معبودانو نه بنه خبردې.دوی ته به ددوی دشرارت خونداوڅکوی.چه دوی نې یاداوساتی.دوی ته په مهلت ورکولو کښې هم دهغه مصلحت او حکمت دې.نه داچه هغوی دعلیم الله ﷻ بې خبره وی.مونږ په مثالونو سره هم مسانیلویاندې دوی پوهه کړل،خوددوی دسوچ پوهې ماده اوپه دې کښې دغوراو فکر کولو توفیق صرف باعمله عالمانوته وی.چه په خپل علم باندې پوره دی.

**قوله تعالى:- وَمَا يَعْقِلُهَآ**

**په مثالونو پوهیدل د علم دلیل دې:-** ددې ایت نه ثابته شوه چه دالله تعالى بیان کړې شوې مثالونو باندې پوهیدل درښتونی علم دلیل دې.حضرت عمروبن عاص رضی الله عنه فرمائی چه زرمثالونه درسول الله ﷺ نه زده کړی دی[1] ددې نه دهغوی علمیت اوفضیلت ظاهردې. حضرت عمروبن مره رحمه الله فرمائی چه دالله تعالى د کلام کوم ایت زماپه تلاوت کښې راشی اودهغې تفصیلی معنی زماپه پوهه کښې رانشی نو زما زړه خوږیږی اوماته سخت تکلیف وی.اوماسره ویره وی چه چرته دالله تعالى په نزدزماشمیره په جاهلانو کښې خونه ده شوې،څکه چه دالله تعالى فرمان دادې چه مونږ دخلقوپه وړاندې مثالونه پیش کوو خو د عالمانو نه علاوه په هغې نورنه پوهیږی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَلَقَ اللّٰهُ | | | | | |
| پیدا کړی دی الله | | | | | |
| چې دپوهې خاوندان وی \| الله ﷻ | | | | | |
| السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | بِالْحَقِّ | اِنَّ | فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً | لِّلْمُؤْمِنِيْنَ |
| اسمانونه | اوزمکه | په حقه سره | بیشکه | په دې کښې یوه نښه ده | دپاره دمومنانو |
| اسمانونه اوزمکه ډیر په مناسبه طریقه پیدا کړی دی \| او په دې کښې مومنانو دپاره غټ دلیل دی | | | | | |

**قوله تعالى:- خَلَقَ اللّٰهُ**

**د خالق حقیقی ذکر:-** دالله تعالى دډیرلوی قدرت ذکرکیږی.چه هم هغه داسمانونواوزمکوخالق دې.هغهٔ دا د لویوتوقواوپه طوربابیکاره اوفضول پیداکړې نه دی.بلکه څکه نې پیداکړی دی چه دلته خلق میشته کړی اوبیادهغوی نیکئ بدئ اوګوری اودقیامت په ورځ دهغوی داعمالومطابق هغوی ته جزا او سزا ورکړی.بدانوته دهغوی اوسیدل اوکړی دبدعملونوپه وجه سزااونیک عملوته په نیکوباندې بهترینه بدله ورکړی.

---

[1] الطبری:۲۰۳/٤، مجمع الزوائد:۲٦٤/۸.

أُتْلُ مَآ أُوْحِيَ اِلَيْكَ مِنَ الْكِتٰبِ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ ؕ

اولوله ته | هغه | چي وحى كيږي | تاته | دكتاب نه | او قائيموه | مونځ |

(اي نبي) كوم كتاب چي تاته دوحى په ذريعه دركړي شوي دي | هغه لوله او مونځ پابندئ سره كوه

اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ

بيشكه چي مونځ | منع كوى سړي | دبي حيايئ نه | اودخرابو (ناروا) كارونونه | اوخامخا ذكر دالله

بيشكه مونځ د خرابو او بي حيائي دكارونو نه منع كوى | اودالله ﷻ يادول ډيره لويه خبره ده

اَكْبَرُ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ ﴿۴۵﴾

(ددي نه هم) لوئ دي | او الله | پوهيږى | په هغه | چي تاسو ئي كوئ |

..............اوالله ﷻ ستاسو په كارونو پوهه دي |

**قوله تعالى:: اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ**

**مونځ دبې حيايئ نه منع كول كوي:-** الله تبارك وتعالى خپل رسول اللهﷺاوايماندارانوته حكم وركړى چه هغوى دي دقران كريم تلاوت كوى اودادي نوروته هم اوروى.اومونځ دي په پابندئ سره اداكوى.مونځ انسان خرابوكارونواونالائقه حركتونونه منع كوى. د نبى كريمﷺفرمان دي.چه كوم مونځ گزارلره خپل مونځ دگناهونونه اوبدوكارونه نه منع نه كړى هغه دالله تعالى نه ډيرلرې شى. په ابن ابى حاتم كښې دى چه كله درسول اللهﷺنه ددې ايت دتفسيرپه باره تپوس اوكړې شونوحضورﷺاوفرمانيل چه څوك مونځ دخرابوكارونونه منع نه كړى نوپوهه شه چه دده مونځ دالله تعالى په درياركښې قبول نه شو.په بل روايت كښې دى چه هغه به دالله تعالى نه ډيرلرې لاړشى. په يوموقوف روايت كښې دحضرت عبدالله بن عباسؓنه روايت دې چه كوم مونځ دښوكارونوواله اودبدوكارونونه دمنع كولوواله نه وى پوهه شه چه دهغه مونځ هغه دالله تعالى نه لرې كوى.رسول اللهﷺفرمائى چه څوك دمونځ خبره نه منى دهغه مونځ نه دې.مونځ دبې حيايئ اوفضول كارونونه دې منع كوى،ددې اطاعت دادې چه ددې فضول كارونونه مونځ گزارمنع شى.حضرت شعيبؑته چه كله دده قوم اووئيل چه اې شعيبؑاياتاته ستامونځ حكم دركوى؟نوحضرت سفيان"رح"ددې په تفسيركښې اوفرمانيل چه اوپه الله تعالى مې دې قسم وى چه مونځ حكم وركوى اومنع كول هم كوى.حضرت عبداللهؓته چااووئيل چه فلانې كس ډيراوږدمونځ كوى ،نودوى ورته اوفرمانيل چه مونځ هغه كس ته نفع وركوى چه څوك دده خبره اومنى.زماپه تحقيق چه پورته كوم مرفوع حديث بيان شوددې هم موقوف كيدل زيات صحيح دى.والله اعلم. په بزاركښې دى چه حضورﷺته چااووئيل چه حضورافلانى كس مونځ هم كوى اوغلاهم نه پرېږدى. حضورﷺاوفرمانيل چه ډيرزربه دامونځ دې ددې بدئ نه واوړوى.چونكه مونځ دالله تعالى دذكرنوم دې.ددې وجې نه ئې ددې نه پس اوفرمانيل چه دالله تعالى يادډيرلوې څيزدې.الله تعالى ستاسودټولوخبرونه اوستاسو دصبادكارونونه خبردې.حضرت ابوالعاليه فرمائى چه په مونځ كښې درې څيزونه دى.كه دانه وى نومونځ نه دې.① اخلاص اوخلوص،②دالله تعالى نه ويره. ③ ذكرالله. د اخلاص سره خوانسان نيك شى.اودالله تعالى دويرې نه انسان گناهونه پرېږدى.اوذكرالله يعنى قران سره نيكى اوبدى ورته اوښودلې شى.هغه حكم وركوى اومنع هم كوى.ابن عون انصارىؓفرمائى چه كله ته په مونځ كښې ئې،نوپه نيكئ كښې ئې،اومونځ ته دبدواوخرابو كارونونه منع كړې ئې،اوپه دې كښې چه كوم دالله تعالى ذكركوې هغه ستادپاره ډيردفائيدې څيزدې. دحماد قول دې چه دكم نه په كم حالت كښې ته به په مونځ كښې دبدئ نه خوېچ ئې.ډيرراوى نه دحضرت ابن عباسؓداقول روايت دې چه

کوم بنده الله تعالی یادوی الله تعالی هم هغهٔ یادوي.هغهٔ ورته اوونیل چه زمونږ سره چه کوم صاحب
دې هغه خووائی چه مطلب ددې دادې چه هرکله دالله تعالی ذکرکوې نوهغه به تایادوی او داډیر لونې
خیزدې.دالله تعالی فرمان دی(فاذکرونی اذکرکم) تاسومایادوئ زهٔ به تاسویادوم.دې اوریدو سره حضور
اوفرمانیل چه هغهٔ رښتیاوئیلې دی یعنی دوړاړه معنې ئي صحیح دی.داهم اوهغه
هم.اوپه خپله دحضرت ابن عباس نه داتفسیرهم مروی دې ،دحضرت عبدالله بن ربیعهmنه یوه خل
حضرت عبدالله بن عباس تپوس اوکړوچه ددې جملې په مطلب پوهیږې؟هغهٔ ورته اوونیل او،ددې نه
مرادسبحان الله،الحمدلله،الله اکبروغیره ونیل دی.دوی ورته اوفرمانیل چه تاعجیبه خبره اوکړه
داداسې نه دې بلکه مقصدترې دادې چه دحکم اومنع په وخت دالله تعالی ستایادول ستادذکرنه لوې
اوډیراهم دې.دحضرت عبدالله بن مسعود،حضرت ابودرداء،سلمان فارسی وغیره نه هم دغه
مروی دی.اودغه هم امام ابن جریرm هم خوښ کړې دې.

| |
|---|
| وَلَا تُجَادِلُوٓا |
| \| اومهٔ کوئ بحث (جګړه) \| |
| \| او اهل کتابو سره په سختئ نه بلکه |
| اَهْلَ الْكِتٰبِ اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ۖ اِلَّا الَّذِيْنَ |
| داهل کتابو سره \| مګر \| په هغه طریقه \| چي هغه \| ډیره ښه وی \| سوا دهغه کسانونه \| |
| په مناسبه طریقه سره بحث کوئ \| .....................اوکه څوک په کښي زیاتي |
| ظَلَمُوْا مِنْهُمْ وَقُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِالَّذِيْٓ |
| چي ظلم ئي کړي وی \| دهغوئ نه \| او وایئ \| چي ایمان راوړي دي مونږ \| په هغه څیز \| |
| اوکړي نو بیله خبره ده \| ...............اوتاسو دا وایئ چي زمونږ په هغه کتاب هم ایمان دی \| کوم چي |
| اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَاُنْزِلَ اِلَيْكُمْ وَاِلٰهُنَا |
| چي نازل کړي شوي وي \| مونږ ته \| او چي نازل کړي شوي دي \| تاسو ته \| او معبود زمونږ \| |
| مونږ ته نازل شوي دي \| اوپه هغه کتاب هم چي تاسو ته نازل شوي دي \| اوزمونږ |
| وَاِلٰهُكُمْ وَاحِدٌ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ۝ |
| او معبود ستاسو \| یودي \| او مونږه \| دهغه الله \| فرمانبردار یو |
| او ستاسو معبود یو دي \| اومونږ دهغه تول حکمونه منو \| |

**قوله تعالی:: وَلَا تُجَادِلُوٓا اَهْلَ الْكِتٰبِ اٰمَنَّا بِالَّذِيْٓ**

**اهل کتاب سره دمناظرې طریقه**''حضرت قتاده وغیره خوفرمانی چه داایت دجهادحکم دایت سره منسوخ دې. اوس خوهم دغه دی.چه یاخواسلام قبول کړه،یاجزیه ورکړه،اوجنګ اوکړه. خو دنورد بزرګانومفسرینوویناده چه دامحکم اوباقی دې.کوم یهودی یانصرانی چه په دینی امورو باندې خان پوهول اوغواړی نوهغهٔ په مهذبه طریقې سره اوپه ښه اندازکښې پوهول پکاردی.هیڅ عجب نه ده چه هغه نیغه لاراختیارکړی.څنګه چه په بل ایت کښې عام حکم موجوددې.﴿اُدْعُ اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ﴾الخ....دخپل رب دلارې دعوت په حکمت اوبهترین نصیحت سره خلقوته ورکړئ. حضرت موسیٰ وحضرت هارون لره چه کله دفرعون طرف ته لیږلې کیږی نوفرمان ورته کیږی چه ﴿ فَقُوْلَا لَهٗ

﴿لَعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ اَوْ يَخْشٰى﴾ يعني دهغهٔ سره په نرمئ خبري كوئ،هيڅ عجيبه نه ده كه هغه نصيحت قبول كړي.اودهغهٔ زړهٔ ويلي شي.هم دغه قول دامام ابن جريرؒ دخوښي دي.اودحضرت ابن زيدؓ نه هم دارِوايت دي.اوپه دوى كښي چه څوك په ظلم باندي ټينګ شي اوضداوتعصب كوي اودحق دقبلولونه انكاراوكړي نوبيامناظرې اوبحثونه بې فائدي دى.بياخودجنګ اوقتال حكم دې.څنګه چه دالله تعالى ارشاددې.﴿لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ﴾ الخ...مونږ رسولان په واضحودليلونوسره اوليږل. او د هغوى سره موكتاب اوميزان نازل كړو.چه په خلقوكښي عدل اوانصاف قائم كړي.بيامونږ اوسپنه هم نازله كړې ده.الخ...پس دالله تعالى حكم دادې چه دخيرواله سره په نرمئ سره اوڅوك چه نه مني دهغهٔ سره دې سختي اوكړې شي.څوك چه جنګ كوي دهغهٔ سره دې جنګ اوكړې شي.اويوه خبره داهم ده چه كه څوك سربښكته اوجزيه اومني.بيافرمائي چه دكوم څيزدكره اوكهوټه پته تاسوته نه وى دهغې دتكذيب طرفته مه مخكې كيږئ.اومهٔ بې اختياره دهغې تصديق كوئ.ممكنه ده چه يوحق حكم تاسواونه منئ اوممكنه ده چه ديوباطل تصديق اوكړئ.پس شرطيه تصديق كوئ.يعنى وايئ چه زمونږ دالله تعالى په هرخبره باندې ايمان دې.اوكهٔ ستاسو پيش كړې شوي دالله تعالى نازل كړې شوې وى نومونږ دامنو.اوكه تاسوپه كښي كمي بيشي كړې وى نونې نه منو.په صحيح بخارى كښي دى چه اهل كتاب به په عبرانى ژبه كښي لوستلواوزمونږ په وړاندې به ئې په عربئ ژبه كښي ترجمه كولو.په دې باندې حضورﷺاوفرمائيل چه تاسودوى ته مهٔ دروغژن وايئ اومهٔ رښتوني.بلكه دا ﴿اٰمَنَّا بِالَّذِيْٓ﴾ نه تردايت داخره پورې وائي،په مسنداحمدكښي دى چه د رسول اللهﷺ خواته يويهودې راغي اووې وئيل چه ايا دا جنازې خبرې كوى؟ پيغمبرﷺورته اوفرمائيل چه ددې پته الله تعالى ته ده.هغهٔ ورته اووئيل چه ماته پته ده چه دوى يقيناًخبرې كوى.په دې باندې حضورﷺاوفرمائيل چه دااهل كتاب چه كله تاسوته څه خبره بيان كړي نومهٔ دوى دروغژن كوه اومهٔ رښتوني.بلكه وائيه چه زمونږ په الله تعالى باندې دهغهٔ په كتابونوباندې اودهغهٔ په رسولانوباندې ايمان دې.داددې وجې نه چه چرته داسې اونه شي چه تاسودچادروغوته رښتيااووايئ يادچارښتياوته دروغ اووايئ.دلته داهم خيال ساتئ چه ددې اهل كتاب اكثرخبرې ددروغووى.اكثربهتان اوځان نه ئې جوړې كړې وى.په دوى كښي تحريف اوتبدل اوتغيراوتاويل رواج بيامونډې دې.اوصداقت په كښي داسې پاتې شوې دې چه هيڅ هم نه دې.بيايوه خبره بله هم ده چه فرض كړئ خبره رښتياهم ده نومونږ ته ئې څه فائده

**چې قرآن شته بيا د بل دين ضرورت نشته:**-زمونږ سره خودالله تعالى تازه اوكامل كتاب موجوددې. چنانچه حضرت عبدالله ابن مسعودؓفرمائي چه تاسوداهل كتاب نه هيڅ پوښتنه مه كوئ.هركله چه هغوى په خپله ګمراه دى نوتاسوته به څه لاراوښائي.اوداكيدې شي چه دهغوى بعضې رښتونې خبرې لره تهٔ ددروغ اوګڼړې ، يا د هغوى ددروغوخبرې ته تهٔ رښتيا اووائي، ياد ساتئ چه داهل كتابوپه زړهٔ كښي دخپل دين يوتعصب دې ،څنګه چه دمال خواهش دې (ابن جرير)په صحيح بخارى كښي دى چه حضرت عبدالله ابن عباسؓ فرمائي چه تاسوداهل كتاب نه سوالونه ولې كوئ؟تاسوخودالله تعالى دطرف نه اوس اوس كتاب نازل شوې دې چه بالكل خالص دې.چه په هغې نه باطل ملاودې اونه به پكښي ملاوشي.تاسوته خوداپه خپله الله تعالى فرمائيلي دى چه اهل كتاب دالله تعالى دين بدل كړې دې.دالله تعالى په كتاب كښي ئې بدلون راوستي دې.اودخپلولاسونوليكلي شوي كتابونوته دالله تعالى كتاب وائي اوددنياګټه ئې حاصله كړه.ولې اياتاسوسره چه كوم دالله تعالى كتاب دې هغه ستاسودپاره كافي نه دې.چه تاسو د هغوى نه تپوسونه كوئ.ګورئ داڅومره ناقدري ده چه په هغوى كښي خويوكس هم ستاسونه نه تپوس نه كوي اوتاسودهغوى نه تپوسونه كوئ؟په صحيح بخارى كښي دى چه يوځل حضرت اميرمعاويهؓپه مدينه منوره كښي دقريشودي يوي ډلې په وړاندې اوفرمائيل چه

ګورئ په دې ټولو اهل کتاب کښې او ددوی په خبروکولووالوکښې دټولونه ښه او رښتونې (حضرت)کعب احبار دې لیکن ددې باوجودهم مونږ کله کله دهغهٔ په خبروکښې دروغ بیا مومو.ددې مطلب دانه دې چه هغه قصداً دروغ وائی بلکه په کوموکتابونوباندې چه دهغوی اعتباردې هغوی په خپله اوچ لامدهٔ هرڅه راجمع کوی.اوپه هغې کښې په خپله دروغ رښتیااوصحیح غلط هرڅه پراتهٔ دی.په دوی کښې دمضبوط علم دحافظانوهیڅ یوه ډله نه وه داخوپه دې امت مرحومه باندې دالله تعالی خصوصی فضل دې چه په دې کښې الله تعالی دبهترین زړهٔ اودماغووالا اواعلی فهم اوعقل والا اوښه حافظان اواتقان والا خلق پیداکړې دی.خوبیاهم تاسواوګورئ چه څومره دموضوعاتوذخیره جمع شوې ده؟اوڅنګه خلقودخپلوڅانونونه خبرې جوړې کړې دی.اګرچه محدیثینوباطل لره دحق نه بالکل جداکړې دی.فالحمدلله.

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنَآ | اِلَيْكَ | الْكِتٰبَ ؕ | فَالَّذِيْنَ | اٰتَيْنٰهُمُ | الْكِتٰبَ

او دارنګې | نازل کړې دې مونږه | تاته | کتاب | پس هغه کسان | چې ورکړې وو مونږ هغوئ ته | کتاب

او هم دغه شان مونږ تاته داکتاب راولیږلو | نوچاته چې مونږ وړاندې کتاب ورکړې وو

يُؤْمِنُوْنَ | بِهٖ ۚ | وَمِنْ هٰٓؤُلَآءِ | مَنْ | يُّؤْمِنُ

هغوئ ایمان راوړي | په دې باندې | او ځینې ددې (مکې د) خلقو نه | هغه څوك دی | چې ایمان راوړی

اوس هغوئ په دې کتاب هم ایمان راوړی | او په دوئ (مشرکانو) کښې هم بعضې خلق په

بِهٖ ؕ | وَمَا يَجْحَدُ | بِاٰيٰتِنَآ | اِلَّا الْكٰفِرُوْنَ ۝ | وَمَا كُنْتَ

په دې باندې | او نهٔ کوی انکار | دایتونو زمونږ نه | مګر کافران خلق | اونهٔ وې تهٔ |

دې (قرآن) ایمان راوړی | اوزمونږ دایتونو نه خو دکافرانو نه بغیر بل څوك انکار نه کوی |

تَتْلُوْا | مِنْ قَبْلِهٖ | مِنْ كِتٰبٍ | وَّلَا تَخُطُّهٗ | بِيَمِيْنِكَ

چې لوستو به دې | مخکښې ددې نه | څهٔ کتاب | اونهٔ لیکلو تا هغه | په ښې لاس خپل سره

او ددې نه وړاندې تا چرته کتاب نه وو لوستې | اونه دې په خپل ښې لاس

اِذًا | لَّارْتَابَ | الْمُبْطِلُوْنَ ۝ | بَلْ هُوَ | اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ

که داسې وې | نو بیا شك کښې پرېوتې شو | باطل پرست خلق | بلکه دا قرآن | نښې دی ښکاره |

کتاب لیکلې شو | هغه وخت به درباندې بیا دې باطل پرستوشکونه کول | بلکه دا خو ښکاره دلیلونه دی

فِيْ صُدُوْرِ | الَّذِيْنَ | اُوْتُوا | الْعِلْمَ ؕ | وَمَا يَجْحَدُ

په سینو (زړونو) کښې | دهغه کسانو | چې ورکړې شوې دی | ورته علم | او انکار نهٔ کوی |

د هغه خلقو په سینو کښې کوموته چې علم ورکړې شوې دی | اوزمونږ دایتونو

بِاٰيٰتِنَآ | اِلَّا | الظّٰلِمُوْنَ ۝

دایتونو زمونږ نه | مګر | ظالمان خلق |

نه غیر نور څوک نه صرف ظالمان انکار کوی |

**قوله تعالی:: فَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ**

**اهل کتاب او مکې والو کښې څه منونکی هم شته.:-** فرمان دې چه څنګه مونږه په مخکښنونبیانوباندې کتابونه نازل کړې وو،هم دغه شان داکتاب یعنی قران مجید هم مونږه اې زمونږ اخری رسوله ﷺ په تاباندې نازل کړې دې.پس داهل کتاب نه چه کوموخلقوزمونږ دکتاب قدراوکړو،اوددې دتلاوت حق نې ادا کړو او چرته چه نې په خپلوکتابونوایمان راوړووړسره داپاك کتاب هم منې.لکه څنګه چه حضرت عبدالله بن سلام﷜اوحضرت سلمان فارسی﷜وغیره،اوپه هغوی خلقویعنی په قریشووغیره کښې هم بعضې خلق په دې باندې ایمان راوړی.خوهغه خلق چه په باطل سره حق پټوی اودنمردرنړانه سترګې پټه وی نوهغوی ددې نه هم منکردی.

**قوله تعالی:: وَمَا كُنْتَ تَتْلُوْا مِنْ قَبْلِهٖ**

اې نبیﷺ په دې خلقوکښې تردیرې مودې پورې اوسیدلې نې،ددې قران دنازلیدونه مخکښې دخپل ژوندیوه لویه برخه دې په دې خلقوکښې تیره کړې ده.دوی ته ښه پته ده چه تاتعلیم حاصل کړې نه دې.ټول قوم اوټول ملك ته ښه پته ده چه ته بالکل بې تعلیمه نې، په لیکلولوستلوباندې نه پوهیږې.نوهرکله چه نن ته یوعجیبه،فصیح اوبلیغ اودحکمت نه ډك کتاب لولې نو ظاهره ده چه هغه دالله تعالی دطرف نه دې.ته په داسې حالت کښې چه یوټکې دې هم لوستلې نه دې په خپله تصنیف اوتالیف کولې نه شې.دحضوراکرم ﷺ هم دغه صفت په تیر شوو کتابونوکښې وو.څنګه چه په قران کښې نقل دی ﴿ اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ ﴾ الخ.یعنی کوم کسان چه تابعداری کوی دهغه رسول اونبی امی دچاصفات چه هغه په خپل کتاب تورات کښې لیکلې شوی بیامومې چه دوی ته دنیکوحکم ورکوی.خونددادې چه د الله تعالی معصوم نبیﷺ دهمیشه دپاره دلیك نه لرې اوساتلې شو.یوه کرښه څه چه دیوټکی لیکل هم حضورﷺ ته نه ورتلل.حضورﷺ کاتبان مقررکړې ووچه وحی به نې لیکله.اودضرورت په وخت به نې د دنیابادشاهانوسره خط اوکتابت هم هغوی کولو.په تیروشووفقهاؤکښې قاضی ابوالولیدباجی وغیره وئیلې دی چه دحدیبیه په ورځ حضورﷺ دا جمله په صلح نامه کښې په خپل لاس لیکلې وه ، چه (هذا ماقاضی علیه محمد بن عبدالله) یعنی داهغه شرطونه دی په کوم چه محمدبن عبدالله فیصله اوکړه .خو دا قول صحیح نه دې.داوهم قاضی صاحب ته د بخاری ددې روایت په وجه اوشوچه په هغې کښې دا الفاظ دی چه(ثم اخذ فکتب)یعنی بیاحضورﷺ په خپله اولیکل.خوددې مطلب دادې چه حضور ﷺ دلیکلوحکم ورکړلو.څنګه چه په بل روایت کښې بالکل صفاموجوددی،چه(ثم امر فکتب)یعنی بیا حضورﷺ حکم ورکړواولیکلې شو.دمشرق اومغرب دټولوعالمانو هم دغه مذهب دې بلکه په باجی وغیره په دې قول باندې سخت ردکړې دې اوددې نه نې دبیزاریٔ اظهارکړې دې .اوددې قول تردیدنې په خپلوشعرونواوخطبوکښې کړې دی.خوداهم خیال ساتیٔ چه د باجی صاحب وغیره داخیال هیڅ کله نه ووچه حضورﷺ په ښه طریقې لیکلولوستلوباندې پوهیدو.بلکه هغوی وئیل چه د حضورﷺ داجمله په صلح نامه کښې لیکل دحضورﷺ یومعجزه وه.څنګه چه دحضورﷺ فرمان دې چه ددجال د دواړو سترګو ترمینځه به کافرلیکلې شوې وی اوپه یوروایت کښې دی چه ك ف ر به لیکلې شوې وی .چه هرمومن به نې اولولې یعنی که بې تعلیمه وی نوهم به نې اولولې.دابه دمومن یوکرامت وی.ددې په شان یوه فقره لیکل دالله تعالی دنبیﷺ یومعجزه وه.ددې هرګزدامطلب نه دې چه ګنی حضورﷺ په لیك لوست باندې پوهیدو یاحضورﷺ زده کړې وو.

**درسول کریم ﷺ د لیکلو روایت ضعیف دې::** بعضې خلق یوروایت پیش کوی چه په هغې کښې دی چه د حضورﷺ انتقال اونه شوترهغې پورې ترڅوپورې چه هغوی لیکل لوستل زده کړې نه وو .داروایت بالکل کمزورې دې.بلکه هیڅ اصل نه لرې.دقران کریم دې ایت ته اوګوریٔ چه څومره په تاکید سره

دحضورﷺدليك لوست نه انكاركوى.اوڅومره په سختئ اوڅومره زورسره ددې انكاركوى چه حضورﷺپه ليكلوباندې پوهيدو.اودانې چه اوفرمائيل چه دښى لاس نه په غالبه اعتبارسره اووئيل ګنى ليكل خوهم په ښى لاس سره كيږى.هم دغه شان﴿وَلَا طَٰٓئِرٖ يَطِيرُ بِجَنَاحَيۡهِ﴾ كښې دى څكه چه هره مرغئ دوزروپه مددسره الوزى.پس دحضورﷺ د أمي كيدوبيان ئې اوفرمائيلو،ارشادكيږى چه كه حضورﷺ ليك لوست والا وې نودې باطل پرستوبه دحضورﷺپه باره كښې دشك ګنجائش بياموندو څكه چه د مخكينو نبيانوپه كتابونه به ئ لوستلې وې اودنه به نقل كړې وې،ليكن دلته خوحيرانتياده چه باوجود د داسې نه كيدوبياهم داخلق زمونږ درسول اللهﷺپه باره كښې داالزام لګوى اووائى چه دا د تير شوو خلقوقيصئ دى چه دهٔ ليكلې دى اوهم هغه ددهٔ په وړاندې سحرماښام لوستلې شى. باوجود د دې چه ښه پوهه دى چه زمونږ رسول پاكﷺتعليم يافته نه دې.ددوى ددې قول په جواب كښې جناب بارى تعالى عزاسمه اوفرمائيل،دوى ته جواب وركړه چه داهغه الله تعالى نازل كړې دې چه دزمكې اواسمان دپټوخبرونه خبرداردې.

قوله تعالى:: فِى صُدُورِ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلۡعِلۡمَ

**قران پاك د عالمانو او حافظانو په سينو كښې محفوظ دې::** دلته ئې اوفرمائيل چه داروښانه ايتونه دى چه د علم والوپه سينوكښې دى.په خپله ايات په واضحه اوصفاسوتره الفاظوكښې دى بيادعالمانوپه دې پوهيدل،يادساتل،اوپه پيژندګلوكښې اسان،څنګه چه فرمان دې،﴿ وَلَقَدۡ يَسَّرۡنَا ٱلۡقُرۡءَانَ لِلذِّكۡرِ فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٖ﴾ يعنى مونږداقران دنصيحت دپاره بالكل اسان كړې دې.پس څوك شته چه ددې نه نصيحت حاصل كړى. رسول اللهﷺفرمائي چه هرنبى ته داسې څيزوركړې شوچه دهغې په وجه خلقوپه هغهٔ باندې ايمان راوړوماته داسې څيزدالله تعالى وحى راكړې شوه چه الله تعالى زماطرف ته نازله كړه نوزهٔ دالله تعالى دذات نه دااميدساتم چه دټولونبيانودتابعدارانونه به زيات زماتابعداران وى.

**د قران پاك د نه وينځلو كيدو او نه سوزيدلو مطلب::** دصحيح مسلم په حديث كښې فرمان بارى تعالى دې چه اې نبىﷺزهٔ به په تاازمينبت كوم،اوستاپه وجه به په خلقوهم ازمينبت كوم،زهٔ به په تاداسې كتاب نازل كړم چه هغه به اوبه وينځلې نه شى.تهٔ به هغه په اودوكښې اوپه ويخه باندې لولې،مطلب ئې دادې چه ددې حروف په اوبوسره اووينځلې شي ليكن هغه دضائع كيدونه محفوظ دې،څنګه چه په بل حديث كښې دى چه كهٔ قران په يوه څرمنه كښې وى نواوربه هغه نه سيزى.څكه چه هغه په سينوكښې محفوظ دې.په ژبه باندې اسان دې.په زړونوكښې موجوددې.اودخپل لفظ اومعنى په اعتبارسره يوژوندئ معجزه ده.هم دغه وجه ده چه په پخوانوكتابونوكښې ددې يوصفت داهم نقل دې چه﴿اناجيلهم فى صدورهم﴾ دهغوى كتاب به دهغوى په سينوكښې وى.امام ابن جرير دا خوښوى چه معنى ئې داده بلكه علم ددې چه ددې كتاب نه مخكښې چاكتاب نه لوستلواونه په خپل لاسوسره ئې څه ليكل داواضحه ايتونه داهل كتاب دعلم والوپه سينوكښې موجوددى.دقتادهؒاوابن جريج نه هم دغه شان نقل دى.اواولنئ قول دحسن بصرىؒ دې اوهم دغه په روايت دعوفىؒابن عباسؓنه نقل دې.اوهم دغه ضحاك وئيلې دې.اوهم دغه زيات ښكاره دې.والله اعلم.

**د قران پاك نه انكار ضدى خلق كوى::** بيافرمائى چه زمونږ دايتونونه منل،نه قبلول،دحدنه تيريدونكو او ضديانوخلقو كاردې.چه نه په حق پوهيږى اونه ددې طرف ته مائيله كيږى.څنګه چه فرمان دې چه په چاباندې ستادرب خبره ثابته شوې ده هغوى به هيڅ كله ايمان نه راوړى.اګركه هغوى ته ټول نښانات راشى تردې پورې چه هغوى دغم نه ډك د عذابونو مشاهده اوكړى.

وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ
| او وائي دا خلق اولې | نازلې نه کړې شوې اپه ده باندې
||اودوئ وائي چې په دې پيغبر باندې دخپل رب
اٰيٰتٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاِنَّمَآ اَنَا
نښې | دطرفه درب خپل نه | ورته اووايه | بيشکه نښې | دالله سره دي | او بيشکه زهٔ |
د طرف نه څه(غيبي) نښې ولې رانغلې | ورته اووايه چې نښې خو دالله ﷻ په قبضه کښې دي
نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ اَنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ
يرونکې يم | ښکاره | آيا کافي نه ده دوئ لره | دانښه چې بيشکه | نازل کړو مونږه | په تاباندې|
او زه خو يو ويرونکې يم | چې صفا صفا ويناکوم| ايا دوئ دپاره دا خبره کافي نه ده |چې مونږ تاته دا
الْكِتٰبَ يُتْلٰى عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً
کتاب | چې اورولې کيږي | دوئ ته | بيشکه | په دې کتاب کښې | خامخا رحمت دې |
کتاب رالېږلې دې | چې دوئ ته لوستلې شي |بيشکه په دې کتاب کښې دايماندارو دپاره رحمت
وَّذِكْرٰى لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِيْ
او نصيحت دې | دپاره دهغه قوم | چې ايمان راوړي |ورته اووايه | کافي دې الله | په منځ زما |
او نصيحت دې | دانې نبي ﷺ ته ورته اووايه | چې صرف يو الله ﷻ زما او ستاسو په مينځ کښې
وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا ۚ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ
او په منځ ستاسو کښې |په حيثيت دګواه سره|معلوم دي هغه ته| هغه څه | چې په اسمانونو کښې دي
ګواهئ دپاره کافي دې| ...................هغه ته داسمانونو او د زمکې هر څه معلوم دي
وَالْاَرْضِ ؕ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا
او په زمکه کښې دي | او هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | په باطل باندې| او کفر ئې اوکړو
..........او څوک چې په ناحقو يقين کوي | او دالله ﷻ نه انکار کوي
بِاللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝
په الله باندې| دا کسان چې دي | هم دوئ | په خساره کښې دي |
نو هم دغه خلق تاوانيان دي |

**قوله تعالىٰ:: وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيٰتٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ**

**دضد په وجه دکافرو د معجزو مطالبه:-** دکافرانو ضداوعناد بيانيږي.چه هغوی دالله تعالى درسولﷺ نه داسې نښانات اوغوښتل څنګه چه دصالح عليه السلام نه هغهٔ قوم غوښتلې وو.بياخپل نبيﷺ ته حکم ورکوی چه دوی ته جواب ورکړه چه ايتونه،معجزې اونښانات ښودنه زماد قدرت خبره نه ده.دادالله تعالى په لاس کښې دي.کهٔ هغهٔ ستاسونيک نيتونه معلوم کړل نوهغه به درته معجزې اوښائی،اوکهٔ تاسويه خپل ضدکښې لوې لوې خبرې جوړوئ نوالله تعالى ستاسونه ويريږی نه.چه دهغهٔ خوښه ستاسودخوښې تابع

شي.څه چه تاسوغواړئ هم هغه درته اوښائي.څنګه چه په بل ايت کښې دي چه دايتونوراليږلونه مونږ ځوك منع کولې نه شي.په ځانې ددې چه مخکينوبرابرزمونږ نه انکارکولو،ثمودیانوته اوګورئ زمونږ نشاني اوښه چه کله هغوی ته راغله نوهغوی په هغې باندې ظلم اوکړو،اووائيه چه زه خوصرف مبلغ يم.پيغام رسونکې يم.استاذې يم،زماكارترستاسوغوږونوپورې دالله تعالى پيغام رسول دي ماتاسونه ستاسوښه اوبداوښودل ،نيك اوبدمې درته اوښودل اوس تاسوپوهه شئ اوستاسوكار.هدايت اوضلالت دالله تعالى دطرف نه دې که هغه ځوك ګمراه کړي نوهغه ته ځوك لاره ښودلې نه شي.چنانچه په بل ځاې کښې دي چه په تادهدايت ذمه نه ده دادالله تعالى کاردې.اودهغه په خوښه باندې منحصر ده.

**ايادقران معجزه كافي نه ده::** د دوی دې فضول خبروته خولږ شان اوګورئ چه کتاب عزيزدوی ته راغلې دې چه دهغې هيڅ يواړخ ته باطل خواته هم ورتلې نه شي،اودوی تراوسه پورې نخښې غواړي.حالانکه داخودټولومعجزونه اوچته معجزه ده.دټولې دنيافصيح اوبليغ ددې دمعارضې نه اوددې په شان دكلام پيش کولونه عاجزه شودټول قران معارضه به څه اوکړي؟دلسوسورتونوپه شان بلکه ديوسورت په شان سورت پيش کولو چيلنج باوجودئې اونکړې شو.نو ايا دومره لويه اودرنه معجزه ددوی دپاره کافي نه ده،چه لانور معجزات هم غواړي. دا خوهغه کتاب دې چه په دې کښې دتيروشووخبروپه باره کښې معلومات دی.اودکيدونکی خبروپکښې پيشن ګوئی ده.اودجهګړو پکښې فيصله ده.اودادهغه په ژبې سره وئيلې کيږي چه بالكل بې تعليمه دې.چاچه دچانه الف با هم وئيلې نه دی.چه يوتکې ليکلوباندې هم نه پوهيږي.بلكه كله داهل علم په صحبت كښې هم ناست نه دې.اوهغه كتاب لولی چه دهغې سره د نورو كتابونو رښتياوالې اودروغ هم معلوميږي،چه دهغې په الفاظوكښې خوږوالې،دكوم په نظم کښې چه رواني،دکوم په اندازكښې چه فصاحت،دكوم په بيان كښې چه بلاغت،دكوم طرزچه زړا راښکونکې ،د كوم سياق چه دلچسپ،اودټولې دنياخوبئ په كښې موجوددی.په خپله دبنی اسرائيلو عالمانو هم ددې په تصديق كولوباندې مجبوردی.اوتيرشوې كتابونه په دې باندې شاهدان دی.ښه خلق په دې مئين اوداخوښوی اوعمل پرې کوی.ددې دومره لوې معجزې په موجودګئ کښې بله معجزه غوښتل صرف انكاردې.

**قوله تعالى::اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ**

بيافرمائی چه په دې کښې دايمان والودپاره رحمت اونصيحت دې.داقران حق لره ظاهرونکی اوباطل لره تباه اوبربادونكې اوتيروشووحالات ستاسوپه وړاندې پيش کوی اوتاسوته دنصيحت او عبرت موقعه درکوی.دګنهګارانجام تاسوته ښائی اوتاسودګناهونونه منع کوی.اووائيه چه په ماباندې اوپه تاسوباندې الله تعالى ګواه دې اودهغه ګواهی کافي ده.هغه ستاسوتكذيب اوسركشي او زما او زما په رښتاوالی اوخيرخواهئ باندې ښه خبرداردې.که ماپه هغه پورې دروغ تړلې نوهغه به ضرورددې بدله زمانه اخستې وه،اوهغه داسې کسان بغيردبدلې نه پريږدی.څنګه چه په خپله دهغه فرمان دې چه که دې رسول ماپورې يوه خبره هم اوتړې نومابه دده ښې لاس نيولې وې اومرئ به مې پرې کړې وې. او ځوك به نه ووچه دې نې زمادلاسه خلاص کړې وی.چونکه په هغه باندې زمارښتياوالی ښکاره دې او زه هم دهغه راليږلې شوې يم اوزه دهغه نوم اخلم اودهغه وئيلې شوې خبرې تاسوته کوم ددې وجې نه هغه زماتائيدکوی اوماته ورخ په ورخ غلبه راکوی اوهغه زمادلاسه معجزات باندې معجزات ښکاره کوی .هغه دزمکي اواسمانونوپه غيبوباندې خبرداردې،اودهغه نه يوه زره هم پټه نه ده.دباطل منونکی او دالله تعالى نه منونکی په نقصان کښې اوذليل دی.دقيامت په ورخ به دوی دخپلويدعملونتيجه اووينی اوکومې سرکشئ چه نې دلته کړې دی دهغې خوندبه څکی.الله تعالى لره نه منل اوبتانومنل ددې نه زيات ظلم به څه وی،هغه عليم اوحكيم الله تعالى به ددوې دبدلې نه بغيرهيڅ كله پرې نږدی.

وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ
او زرغواړي ستانه |
اودا خلق د عذاب په غوښتلو

بِالْعَذَابِ ۚ وَلَوْلَآ اَجَلٌ مُّسَمًّى لَّجَآءَ هُمُ
عذاب | اوکه نه وي نیته | مقررکړې شوې | نو خامخا به راغلي وي | په هغوئ باندې
تندي کوي | اوکه چرې (دوړاندې نه دهرڅیز) وخت مقرر نه وې | نو په دوئ باندې به

الْعَذَابُ ۚ وَلَيَاْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝
عذاب | او خامخا هغه به راځي دوئ باندې | ناساپه | او دوئ به | خبر هم نه وي |
عذاب راغلي وو | او عذاب به په دوئ ناګهانه راشي | او دوئ ته به خبر هم نه وي

يَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ۚ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌ ۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ۝
او زرغواړي ستانه | عذاب | او بیشکه | دوزخ | خامخا چاپیره دي | دکافرانو نه |
دوئ په تابانديې د عذاب راتلو تلوارکوي |اوپه دې کښې شک نشته|چې دکافرانو نه به جهنم راتاویږي

يَوْمَ يَغْشٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ
په کومه ورځ | چې راخورشي په دوئ باندې| عذاب | دپاسه ددوئ نه | او دلاند دخپو ددوئ نه |
په کومه ورځ چې به پرې عذاب د پورته نه اود پښو نه دلاندې نه دوی راګیر کړي

وَيَقُوْلُ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝
اواوبه وائی(ورته الله) |اوڅکئ مزه |دهغه عملونو | چې وئ تاسو | چې کول به موا |
او اللهﷻ به ورته اووائی | چې تاسو څه کول دهغې نه خوند واخلئ |

**قوله‌تعالی:: وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ۚ**
**تندي مه کوئ عذاب به ضرورراځي:** دمشرکانو دخپل جهالت په وجه دالله تعالی عذاب لره طلب کولو بیان کیږي.دوی به نبیﷺ ته هم دغه وئیل اوپه خپله به نې الله تعالی ته هم دغه سوالونه کول چه اې باری تعالی اکه دې ستادطرف نه حق دې نوته په مونږ باندې داسمان نه کاڼي راووروه اومونږ نه دردناک عذاب راکړه.دلته هغوی ته جواب ملاویږي چه الله تعالی داخبره مقررکړې ده چه دې کافرانوته به دقیامت په ورځ عذاب ورکوی اوکه داسې نه وې نوددې په غوښتلوسره به دعذاب توري وریځې په دوی راوریدلې وې.اوس دې هم دوی یقین اوکړی چه داعذاب به راځي اوضروربه راځي.بلکه ددوی په بې خبرئ کښې به په دوی باندې ناګهانه اوپه یوځانې راشي.دوی دعذاب دپاره تندی کوی اومونږ هم په جهنم کښې دوی دڅلورواړوطرفونه راګیرکړی دی.دابن عباسؓنه دانقل دی چه هغه جهنم دغه بحراخضردې.ستوری به هم په دې کښې راپریوځی،اونمرسپوږمئ به هم په دې کښې بې نوره شي او غوزارکړې شی.اودې به لمبه شي،اوجهنم به تري جوړشي.دمسنداحمدپه مرفوع حدیث کښې دی چه هم سمندرجنهم دې.ددې حدیث راوی حضرت یعلیٰ ته خلقواووئیل چه تاسوخلق نه ګورئ چه الله تعالی فرمائی (اَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا ؕ)یعنی هغه اورچه دهغې نه ګیرچاپیره قناتونه دی.نووې فرمائیل چه قسم مې

دې وی په هغه باندې دچاپه لاس کښې چه دابویعلی ساه ده زه به هیڅ کله په دې کښې نه داخلیږم ،ترڅوپورې چه دالله تعالی په وړاندې پیش نه کړې شم.اوماپورې به ددې یوه قطره نه راونه رسی تردې پورې چه دالله تعالی په وړاندې پیش کړې شم.داتفسیرهم ډیرغریب دې.اوحدیث هم ډیر غریب دې.والله اعلم.

**قوله تعالی:: وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌ**

**جهنم به کافرانو لره هر طرف نه ګیر وی::** بیافرمانی چه په دې دوران کښې به ددوی نه پورته اولا ندې اوروی.څنګه چه په بل ایت کښې دی.﴿لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ﴾ ددوی دپاره جهنم د اوسیدو ځائې دې.په بل ایت کښې دی ﴿لَهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ﴾ یعنی ددوی لاندې اوپورته به هم داورفرش اوسیوری وی. په بل ځائې کښې ارشاددې.﴿ لَوْيَعْلَمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا حِيْنَ لَا يَكُفُّوْنَ عَنْ وُّجُوْهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَنْ ظُهُوْرِهِمْ﴾ الخ....یعنی ارمان چه کافرهغه وخت اوپیژنی هرکله چه دوی به نه د خپلې مخې نه اور لرې کړې شی اونه دخپلې شانه.ددې ایتونونه معلومه شوه چه دهرطرف نه به دې کافرانولره اور خوری .دمخې نه اوروستونه،پورته نه،لاندې نه،دښی ظرف نه،دګس طرف نه،نوپه دوی باندې به دالله تعالی غصه اوقهروی.ددې ځائې نه به ورته هروخت ونیلې کیږی چه واخلئ دعذاب مزه اوڅکئ،پس یو ظاهری جسمانی عذاب داباطنی اوروحانی عذاب.هم ددې ذکرپه ایت﴿يَوْمَ يُسْحَبُوْنَ﴾الخ.. . او په ایت﴿يَوْمَ يُدَعُّوْنَ﴾الخ... کښې دی.یعنی هرکله چه جهنم ته پرمخې راښکلې شی اوورته به اوونیلې شی چه واخلئ اوس دعذاب مزه اوڅکئ،په کومه ورځ چه به دوی په دهکوسره په جهنم کښې واچولې شی اوورته به اوونیلې شی چه داهم هغه جهنم دې کوم چه تاسودروغ ګڼړلو،اوس اووایئ داجادودې؟لارشئ اوس جهنم ته لارشئ،اوس ستاسوصبرکول اونه کول یوشان دی.تاسوبه د خپلو عملونو بدله ضروربیامومئ.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اِنَّ | اَرْضِيْ | وَاسِعَةٌ | فَاِيَّايَ | |
| اے بندګانو زما هغه بندګانو | چی ایمان موراوړی دی | بیشکه | زمکه زما | فراښه ده | پس خاص ما لره | |

ائې زمامومنانو بندګانو! زمکه ډیره فراخه ده ......................نو تاسو خالص زما عبادت کوئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاعْبُدُوْنِ | كُلُّ نَفْسٍ | ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ | ثُمَّ | اِلَيْنَا | تُرْجَعُوْنَ |
| بندګی کوئ | هر نفس | څکونکې دمرګ دې | بیا به | خاص مونږ ته | اواپس راوستلې شئ |

هریو ژوندې به خامخا د مرګ خوند څکی | بیا تاسوټول به ماته راپیش کیږئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | لَنُبَوِّئَنَّهُمْ |
| اوهغه کسان | چی ایمان ئې راوړی دی | او عملونه ئې کړی دی نیک | خامخا به ډیره کړو مونږ هغوئ |

او چا چې ایمان راوړې دې | او نیک کارونه کوی | .......................مونږ به ورته د جنت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنَ الْجَنَّةِ | غُرَفًا | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | خٰلِدِيْنَ |
| دجنت نه | په داسې ماڼړو کښی | چې بهیږی به | لاند دهغې نه | نهرونه | همیشه به اوسیږی |

بالاخانوکښې ځائې ورکړوا | چې دهغې لاندې به نهرونه بهیږی | همیشه دپاره به په هغې کښې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْهَا | نِعْمَ | اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ | الَّذِيْنَ | صَبَرُوْا |
| په هغې کښې | ډیر ښه دې | اجر دعمل کونکو | دهغه عمل کونکو | چی صبر ئې اوکړو |

اوسیږی | دنیک (عمل) کوونکو بدله ډیره ښه ده | (یعنی) چا چې صبر کړې وی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَعَلٰى رَبِّهِمْ | يَتَوَكَّلُوْنَ ۝ | وَكَاَيِّنْ | مِّنْ دَآبَّةٍ | لَّا تَحْمِلُ | | |
| او په خپل رب باندې | توکل (بروسه) کوی | او څومره ډېر دی | دخناورونه | چې نه باروی | | |
| او په خپل رب باندې توکل کوی | ..................او ډېر داسې ساه لرونکی شته | | | | | |
| رِزْقَهَا ۖ | اَللّٰهُ | يَرْزُقُهَا | وَاِيَّاكُمْ ۖ | وَهُوَ | السَّمِيْعُ | |
| رزق خپل | الله | رزق ورکوی هغوئ له هم | او تاسو ته | او هغه هر څه | اوریدونکې | |
| چې خپل ځان له روزی سنباله نه ساتلی | الله ﷻ هغوئ ته هم روزی ورکوی | اوتاسو ته هم | او هغه هرڅه | | | |
| الْعَلِيْمُ ۝ | | | | | | |
| او په هر څه پوهه دې | | | | | | |
| اوری | او په هرڅهٔ پوهه دې | | | | | |

**قوله تعالی:: يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا**

**دهجرت ترغيب**:-الله تبارك وتعالى په دې ايت کښې ايمان والوته دهجرت کولو حکم ورکوی.چه هغوی کوم ځاې کښې دين قائم نه شی ساتلې، دې ددې ځاې نه لاړشي چرته چه دوی ته ددوی په دين کښې ازادی وی.دالله تعالی زمکه ډيره فراخه ده.چرته چه دوی دالله تعالی دحکم مطابق عبادت اوپه توحيدباندې عمل اوکړې شی هلته دې لاړشی.په مسنداحمدکښې دی چه رسول الله ﷺفرمانی،تول ښارونه دالله تعالی ښارونه دی.اوټول بندګان دالله تعالی غلامان دی.کوم ځاې کښې چه تهٔ ښيګړه بيامومې هلته اوسيږه.چنانچه صحابه کراموته چه کله په مکه کښې اوسيدل ګران شونوهغوی هجرت اوکړواوحبشې ته لاړل.چه هلته په امن اوامان سره دالله تعالى په دين باندې قائم پاتې شی.دهغه ځاې عقلمنداوپوهه بادشاه اصحمه نجاشی ددوی پوره پوره مدداونصرت اوکړو او هلته دوی په ډيرعزت اواوخوشحالئ سره اوسيدل.بيادډې نه پس دالله تعالى په اجازت سره صحابه کرامواورسول اللهﷺ په خپله دمدينې منورې طرف ته هجرت اوکړو.

**قوله تعالی:: كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ**

مرګ نزدې دې د اخرت تيارې اوکړئ ددې نه پس فرمانی چه په تاسو کښې هريوکس لره مره کيدل او زماپه وړاندې حاضريدل دی.تاسوکه خواه هرچرته ئې،دمرګ دپنجې نه خلاصې بيامونډې نه شئ.پس تاسولره ټول ژونددالله تعالی په اطاعت کښې اودهغهٔ په راضی کولو کښې تيرول پکاردی.چه دمرګ نه پس هرکله چه دالله تعالی په وړاندې حاضرشئ نوبه بدئ کښې راګيرنه شئ.ايمان داراونيك عمله خلقولره به الله تعالی دجنت عدن اوچتومنزلونوته اورسوی.چه دهغې دلاندې قسم قسم نهرونه بهيږی.چرته صفاوسپينې اوبهٔ،چرته دپاکوشرابو او چرته دپيونهرونه.داچينې به په خپله کوم طرف ته جنتی اوغواړی په بهيدوشی.دوی به هلته هميشه اوسيږی،اونه به دهلته نه ويستې شی اونه به لرې کړې شی.نه به هغه نعمتونه ختميږی اونه به په هغې کښې کمې راځی .مومنانوته دهغوی دنيك عملونو په وجه دجنت اوچتې بالاخانې به مبارك شی.چاچه په خپل رښتونې دين باندې صبر اوکړو او د الله تعالى طرف ته ئې هجرت اوکړودهغهٔ دشمنان ئې پرېښودل او خپلو خپلوانولره اوخپله کورواولوله ئې دالله تعالی په لاره کښې پريښيودل دهغهٔ دنعمتونو اودهغهٔ د انعاماتوپه اميدباندې ئې ددنياعيش اوعشرت ته لته ورکړه.

**دجنت بالاخانې به دڅا دپاره وي** :: په ابن ابی حاتم کښې دی چه رسول اللهﷺفرمائی،په جنت کښې داسې بالاخانې دی چه دهغې ظاهردباطن نه په نظرراځی.الله تعالی هغه ددوی دپاره جوړې کړې دی.څوك چه په بل روټۍ خوری اوخوش کلام اونرم گفتاروی.دمونځ روژې پابندوی،اودشپې هرکله چه خلق په خوب اوده وی دوی مونځونه کوی.اوپه خپل رب باندې کامله بهروسه ساتی،په خپلوټولواحوالوکښې که دنیاوی اوکه دینی.

**قوله تعالی:: وَكَأَيِّنْ مِّن دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا**

**هجرت سره رزق نه کمیږی بلکه زیاتیږی**:: بیانې اوفرمائیل چه رزق دیوځائې سره خاص نه دې.بلکه دالله تعالی تقسیم کړې شوې رزق عام دې.اوهرځائې کښې دې.څوك چه چرته وی هلته وررسی. د مهاجرین په رزق کښې الله تعالی دهجرت نه پس هغه برکت واچولوچه دوی د دنیا د اطرافو مالکان شو. نووې فرمائیل چه ډیرځناوردی چه نه دخپل رزق دراغونډولوطاقت لری اودهغې نه دحاصلولو،نه دصبادپاره څه ږدی،دالله تعالی په ذمه دهغوی رزق دې.پروردګارهغوی ته دهغوی رزق رسوی.ستاسورازق هم هغه دې.هغه هیڅ مخلوق لره په هیڅ وخت کښې نه هیروی.میږوته دهغوی په سوړوکښې،مرغوته په اسمان اوزمکه اوددې ترمینځه خلا کښې،ماهیانوته په اوبوکښې،هم هغه رزق ورکوی.څنګه چه نې اوفرمائیل.﴿وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ﴾ الخ...یعنی په مخ دزمکې هیڅ یو ځناورداسې نشته چه دهغه روزی د الله تعالی په ذمه نه وی.هم هغه دهغوی داوسیدوځائې ښه پیژنی.داهرڅه د هغهٔ په روښانه کتاب کښې موجوددی.ابن ابی حاتم کښې دی.ابن عمرﷺفرمائی.زهٔ درسول اللهﷺسره روان وم.دمدینې باغونوکښې یو باغ ته رسول کریمﷺلاړو،اوراپریوتې کهجورې حضورﷺصفاکولې اوخوړلې،ماته نې هم دخوراك دپاره اوفرمائیل،ماورته اووئیل،حضورﷺزه خوداکهجورې خوړې نه شم. حضورﷺاوفرمائیل لیکن په ماخوداډیرې ښه معلومیږی.ځکه چه دڅلورمې ورځې سحردې چه ماڅه خوړلې نه دی.اونه ماته دخوراك دپاره څه ملاوشوې دی.واوره کهٔ ماغوښتې نوالله تعالی ته به مې سوال کړې وواوالله تعالی به زه دقیصراوکسری مالك جوړکړې وې.اې ابن عمراستابه څه حال وی کله چه تهٔ به په داسې خلقوکښې نې چه دټول کال دپاره به غله جمع کوی،اودهغوی یقین اوتوکل به بالکل ختم شوې وی.مونږ لاپه هغه حالت کښې ووچه داایت ﴿وَكَأَيِّن﴾الخ...نازل شو.پس رسول اللهﷺ اوفرمائیل،الله تعالی ماته دخزانودجمع کولواوخواهشاتوپسې دتلوحکم نه دې راکړې،کوم کس چه د دنیا خزانې جمع کړی اودهغې سره باقی ژونداوغواړی،هغه دې پوهه شی چه دحیات والا باقی ژوند خودالله تعالی په لاس کښې دې.ګوره زهٔ خوبه نه درهم اودینارجمع کوم اونه به دصبادپاره نن روزی جمع کوم.داحدیث غریب دې.اوددې راوی ابوالعطوف جزری ضعیف دې.

**د کارغه بچې خوری؟** :: دامشهوره ده چه دکارغهٔ د بچی کله بنړې راوځی نودهغهٔ بنړې وزرې سپین وی. داچه اووینی نوکارغهٔ په نفرت سره دهغه نه اوتختی.څوورځې پس دهغووزرورنګ تورشی. نو بیا هله دهغوی موریلارواپس راشی اوهغوی دانه وغیره ورکوی.په شروع ورځوکښې هرکله چه ددوی مور پلارددوی نه متنفرشی اواوتختی اوددوی خواته هم نه راځی،نوهغه وخت کښې الله تعالی واړه واړهٔ ماشی ددوی خواته رالیږی،چه ددوی خوراك جوړیږی .دعربو شاعرانو دانظم کړې هم دې. د حضورﷺ فرمان دې چه سفرکوئ چه صحت اوروزی بیا مومئ.په بل روایت کښې دی چه سفرکوئ چه صحت اوغنیمت ملاوشی،په بل حدیث کښې دی چه سفرکوئ نفع به بیامومئ اوروژې نیسئ نوصحت مندبه نې،جهادکوئ غنیمت به درته ملاویږی،په بل روایت کښې دی چه کوشش کونکی اواسانئ والوسره سفرکوئ،بیانې اوفرمائیل الله تعالی د خپلو بندګانو خبرې اوریدووالا اودهغوی حرکات اوسکنات باندې پوهه دې.

| | | |
|---|---|---|
| وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ | مَّنْ خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ |
| او كه ته تپوس اوكړې ددوئ نه | چي چاپيدا كړې دي | آسمانونه |

او په هرځهٔ پوهه دې او كه چرې ته تري تپوس اوكړې اچي هغه ذات څوك دې چي آسمانونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْأَرْضَ | وَسَخَّرَ | الشَّمْسَ | وَالْقَمَرَ | لَيَقُولُنَّ | اللّٰهُ |
| او زمكه | او تابع كړي ئې دي | نمر | او سپوږمئ | نو خامخا به اووائي | چي الله |

اوزمكه ئې پيدا كړې دي او نمر او سپوږمئ ئې په كار لګولي دي | دوئ بهٔ ضرور اووائي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَنّٰى يُؤْفَكُونَ۝ | اَللّٰهُ | يَبْسُطُ | الرِّزْقَ | لِمَنْ يَّشَاءُ |
| نو دكوم خائې نه دوكه كيږي دوئ | الله | فراښه كوي | رزق | دپاره دهغه چاچي خوښه ئې شي |

چي الله ﷻ نو بيا دوئ كوم طرف ته اړولې روان دي | الله هغه ذات دې چي پخپلو بندګانو كښې پخپله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ عِبَادِهٖ | وَيَقْدِرُ | لَهٗ | إِنَّ اللّٰهَ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيْمٌ۝ |
| دبندګانو خپلو نه | او تنګوي (روزي) | هغه لره | بيشكه الله | په هر څيز | باندې عالم (خبر) دې |

خوښه د چا رزق فراخه كوي | او دچا رزق تنګوي | بيشكه الله ﷻ په هر څيز ډير ښه پوهه دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ | مَّنْ نَّزَّلَ | مِنَ السَّمَاءِ | مَاءً | فَأَحْيَا |
| او كه ته تپوس اوكړې ددوئ نه | چي چا نازل كړې دي | دآسمان نه | اوبهٔ | پس ژوندئ ئې كړه |

اوكه ته ددوئ نه تپوس او كړې | چي چا پورته نه اوبهٔ رااولې دي | نو زمكه ئې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِهِ | الْأَرْضَ | مِنْ بَعْدِ | مَوْتِهَا | لَيَقُولُنَّ | اللّٰهُ | قُلِ |
| په هغې باندې | زمكه | روستو | دمرګ دهغې نه | نو خامخا به اووائي | چي الله | ورته اووايه |

د مړه كيدو نه پس بيا راژوندئ كړه | نو دوئ به وائي چي الله ﷻ نازل كړې دي | ته اووايه چي

| | | |
|---|---|---|
| الْحَمْدُ لِلّٰهِ | بَلْ أَكْثَرُهُمْ | لَا يَعْقِلُونَ۝ |
| چي ثناده الله لره | بلكه زيات خلق ددوئ نه | دعقل نه كار نهٔ اخلي |

تول تعريفونه الله ﷻ دپاره دي اخو په دوئ كښې زيات كسان نه پوهيږي |

**قوله تعالى:: وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ**

**درزق فراخي اوتنګي دالله تعالى په لاس كښې ده:-** الله تعالى ثابتوي چه معبودبرحق صرف هغه دې. خپله مشركان هم داخبره مني چه دزمكې اسمان پيداكونكې، نمراوسپوږمئ لره مسخر كونكې، شپې او ورځې لره پرله پسې راوستونكې، خالق، رازق، مرګ اوژوندباندې قادرصرف الله تعالى دې.هغه ته ښه پته ده چه دمالدارئ لاتق څوك دې؟اودغريبئ لاتق څوك دې؟دخپلوبندګانومصلحتونه هغهٔ ته پوره پوره معلوم دي.پس هركله چه مشركانوته په خپله پته ده چه دټولوڅيزونوخالق صرف الله تعالى دې په هرڅه باندې قابض صرف هغه دې.بيادهغهٔ نه علاوه دنوروعبادت ولې كوي؟اودهغهٔ نه علاوه په نوروباندې توكل ولې كوي؟هركله چه هغهٔ دملك مالك يواځې دې.نودعبادتونولاتق هم هغه يواځې دې.توحيدربوبيت منلوسره بيادتوحيدالوهيت نه انكارعجيبه څيزدې.په قران كريم كښې خو د توحيد ربوبيت سره سره دتوحيدالوهيت ذكرپه كثرت سره دې.ځكه چه دتوحيدربوبيت دمكې مشركان قائل

خوروونوهغوی ته قائل کیدوسره سره دتوحیدالوهیت دعوت ورکړې کیږي.مشرکانو به په حج اوعمره لبیك ونیلوسره بیاهم داالله تعالی سره دشریکانواقرارکولو ،لبيك لاشريك لك الاشريكا هولك تملكه وماملك يعنی ای الله مونږ حاضرشوستاځوك شريك نشته خوداسې شريكان دچامالك اودچادملك مالك هم ته ئې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | وَمَا هٰذِهِ | الْحَيٰوةُ |
| | | | | اونه دي | دا ژوند |
| | | | | | اود دنيا دا ژوند |
| الدُّنْيَآ | اِلَّا | لَهْوٌ وَّلَعِبٌ | وَاِنَّ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ | لَهِيَ الْحَيَوَانُ | |
| ددنيا | مگر | عبث كار دي او لوبه ده | او بيشكه كور دآخرت | خامخا هغه دي اصلي ژوند | |
| دلوبو او دتماشو نه سوا بل هيڅ حققيت نه لرى \| او اصل ژوندون د آخرت دي | | | | | |
| لَوْ كَانُوْا | يَعْلَمُوْنَ ۝ | فَاِذَا | رَكِبُوْا | فِي الْفُلْكِ | |
| افسوس چي وي دا خلق | چي پوهيدلي | پس هر كله چي | سوارة شي دا خلق | په كشتئ كښي | |
| كاش ،چي دوئ پوهيدلي \| ...................... كله چي دوئ په بيړئ كښي سواره شي | | | | | |
| دَعَوُا اللّٰهَ | مُخْلِصِيْنَ | لَهُ | الدِّيْنَ ۚ | فَلَمَّا | |
| نو رابلي الله | په دا حال كښي چي خالص كونكي وي | دپاره دهغه(الله) | دين(خپل) | لره پس هر كله چي | |
| نو بيا صرف الله ﷻ پاك رابلي \| .........................خوځه وخت چي | | | | | |
| نَجّٰىهُمْ | اِلَى الْبَرِّ | اِذَا هُمْ | يُشْرِكُوْنَ ۝ | | |
| هغه بچ كړي هغوئ لره | وچي | ته | نو بيا هغوئ | شريك جوړوى داالله سره | |
| مونږ ئې اوچي غاړي ته واړوو \| ............نو بيا الله ﷻ سره شريكان جوړوى | | | | | |
| لِيَكْفُرُوْا | بِمَآ | اٰتَيْنٰهُمْ ۚ | | | |
| دپاره ددي چي ناشكري اوكړي هغوئ | په هغه نجات) | چي وركړي وو مونږ هغوئ ته | | | |
| نو ځه چي مونږ دوئ ته وركړي دي \| .................دهغې ناشكري كوي \| او دپاره ددي | | | | | |
| وَلِيَتَمَتَّعُوْا | فَسَوْفَ | يَعْلَمُوْنَ ۝ | | | |
| او چي نفع واخلي (ددنيا دژوند) | پس دير زربه | معلوم شي دوئ ته | | | |
| چي خو ورځې مزې واخلي انو دير زر به (په ځان) پوهه شي | | | | | |

**قوله تعالى:: وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ**

مشركانوبه دمصيبت په وخت كښې الله تعالى ته اوازكولو:-ددنيادسپك والى اوذلالت ددې دزوال او فنا ذكر كيږي.چه دې لره هيڅ هميش والې نشته،دابه هميشه قائمه نه وى داخوصرف لهولعب دې.داخرت ژوند د دوام اوهميشه باقى پاتې كيدونكې ژونددې.هغه دزوال اوفنا اوذلالت نه لرې دى.كه دوى ته پته وې نودې باقى پاتې كيدونكى څيزباندې به ئې فناڅيزته فوقيت نه وركولو.

بیا فرمانی چه مشرکان دبې وسیٔ په وخت کښې خوالله تعالی وحده لاشریك ته اوازونه کوی .بیاد مصیبت اخواکیدوسره اوتکلیف لرې کیدوسره دنوروئومونه ولې اخلی؟ځنګه چه په بل ځائې کښې دی (وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ) الخ...یعنی هرکله چه په سمندرکښې په مشکل کښې راګیرشی هغه وخت دالله تعالی نه علاوه نورټول ترینه هیرشی اوکله چه په هغه ځائې کښې خلاصې بیامومی اواوچې ته راشی نوفوراً مخ اوګرځوی.

**دعکرمه بن ابی جهل دایمان واقعه::** په سیرت ابن اسحاق کښې دی چه کله رسول اللهﷺ مکه فتح کړه، نو عکرمه بن ابوجهل دهلته نه اوتختیدو.اوحبشې ته دتلوپه اراده په کشتیٔ کښې کښیناستو.اتفاقاً سخت طوفان راغې نوکشتیٔ اخوادیخواتله راتله.ځومره مشرکان چه په کشتیٔ کښې وو ټولواوونیل چه دامو قعه صرف الله تعالی ته داوازورکولوده.پاځئ اوپه اخلاص سره الله تعالی ته دعاګانیٔ اوکړیٔ دې وخت کښې خلاصې صرف دهغهٔ په لاس کښې دی.دې اوریدوسره عکرمهؓ اوفرمائیل،واوریٔ په الله تعالی مې دې قسم وی که دسمندرددې بلانه دهغهٔ نه علاوه نورڅوك مونږ ته خلاصې راکولې نه شی نوپه اوچه باندې هم دمصیبتونولرې کولووالا هم هغه دې.اې الله تعالی!زهٔ ستاسره وعده کوم چه که دې ځائې نه بچ لاړم نوسیده یعنی نیغ به لاړشم اودحضرت محمدرسول اللهﷺ په لاس کښې به خپل لاس کیږدم او د حضور ﷺ کلمه به اووائیم.زمایقین دې چه دالله تعالی رسول ﷺ به زماخطاګانې معاف کړی.اوبه مابه رحم اوکړی.نوهم دغسې اوشو(لِيَكْفُرُوا) او(وَلِيَتَمَتَّعُوا)کښې چه کوم لام دې دې ته لام عاقبت وائی ځکه چه ددې قصددانه وی اوفی الواقع دهغهٔ طرف ته نظراچولونه هم داخبره ده.اودالله تعالی په نسبت خودالام تعلیل دې.ددې پوره تقریرمونږ په ایت ( لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا ) کښې کړې دې.

| |
|---|
| اَوَلَمْ يَرَوْا |
| آیا نه ګوری دا خلق ۰ |
| آیا دویٔ چرې غور نه دې کړې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنَّا جَعَلْنَا | حَرَمًا | اٰمِنًا | وَّيُتَخَطَّفُ | النَّاسُ |
| چې بیشکه جوړ کړو مونږ | حرم | امن ورکونکې ځائې | حالانکه تښتولې کیږی | خلق |

چې مونږ حرم دامن ځائې ګرځولې دې او د ګیرچاپیره علاقو نه خلق (په زوره) بهر ویستلې شی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ حَوْلِهِمْ | اَفَبِالْبَاطِلِ | يُؤْمِنُوْنَ | وَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ | يَكْفُرُوْنَ |
| چاپیره ددویٔ نه | آیا پس په باطل باندې | ایمان راوړی دویٔ | او په نعمت دالله | کفر کوی دویٔ |

نو آیا دویٔ بیا هم په باطلو معبودانو باندې ایمان راوړی او دالله ﷻ دنعمتونوناشکری کوی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | اَظْلَمُ | مِمَّنِ | افْتَرٰى | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا | اَوْ كَذَّبَ |
| او څوك دې | ډیر ظالم | دهغه چانه | چې دخانه جوړوی | په الله باندې | دروغ | یا دروغ ګڼړی |

او د هغه چا نه غټ ظالم څوک کیدیشی اچې په الله ﷻ پورې دروغ اوتړی یا کله چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِالْحَقِّ | لَمَّا | جَآءَهٗ | اَلَيْسَ | فِيْ جَهَنَّمَ | مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ |
| حق لره | هر کله چې | راشی هغه ته | آیا نشته | په دوزخ کښې ځائې | دپاره دکافرانو |

حقه خبره ورته اورسیږی نو هغې ته دروغ وائی!آیا دکافرو استوګنه به په دوزخ کښې نه وی؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | جَاهَدُوْا | فِيْنَا | لَنَهْدِيَنَّهُمْ | سُبُلَنَا ؕ |
| او هغه كسان | چي محنت كوي | په دين زمونږ كښي | خامخا به ښايو مونږ هغوئ ته | لاري زمونږ |

اوڅوك چي زمونږ ددين په لاره كښي كوشش كوي نو مونږ به ورته خپلي لاري اوښايو

| | |
|---|---|
| وَاِنَّ اللّٰهَ | لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۶۹﴾ |

او بي شكه الله | خامخا دنيك عملو خلقو سره دي |

اوبيشكه الله ﷻ نيكانو خلقو سره دي

**قوله تعالى:: اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا اٰمِنًا**

**زمانعمت يادكړئ اوزما په نبي ايمان راوړئ:**- الله تعالى قريشوته خپل احسان وريادوي چه هغه دوي ته په خپل حرم كښي ځائي وركړو. كوم ته چه هركس ورشي هغه امن ته وراورسي. ددي سره خواوشاكښي جدال اوقتال اولوټ ماركيږي. اوددي ځائي والا په امن اوامان سره خپل ژوندتيروي. څنگه چه ئي په سوره «لايلف قريش» الخ... كښي بيان اوفرمائيل، نوايادددي دومره لوي نعمت شكريه داده چه دوي دالله تعالى سره د نوروهم عبادت اوكړي؟ دايمان راوړوپه ځائي كفركوي، اوپه خپله هم تباه شي اونورهم دتباهئ په لارياندي روان كړي. دوي له خوداپكاروچه دوي ديوخداي په عبادت كښي دهرچانه زيات وي. نبي اخرالزمان ﷺ ددوي پوره رښتوني ملگري دي. خودوي ددي الټا دالله تعالى سره شرك اوكفركول اونبي اكرم ﷺ نه منل اوهغه ته تكليف اومصيبت رسول شروع كړي دي. په خپله سركشئ كښي تردي حدپوري مخكښي شوي دي چه دالله تعالى پيغمبر ﷺ ئي دمكي نه بهركړو.

نوپه اخره كښي دالله تعالى نعمتونه شوكيدل ددوي نه شروع شو. دبدرپه ورځ ددوي مشران په بي دردئ سره قتل شو. بيا الله تعالى دخپل نبي ﷺ په لاس مكه فتح كړه. اوددوي ئي ذليل اوبست كړل. او د هغه نه زيات لوي ظالم بل هيڅوك نشته چه په الله تعالى پوري دروغ اوتړي. وحي نه راځي اواووائي چه زماطرف ته وحي كيږي. اودهغه نه زيات لوي ظالم هيڅوك نه دي چه دالله تعالى رښتوني وحي اودهغه حق اونه مني اودحق رارسيدوباوجودپه دروغوباندي كلك ولاړوي داسي مفتري اودورغ وئيونكي خلق كافردي. اوددوي ځائي جهنم دي.

**د «وَالَّذِيْنَ جَاهَدُوْا» نه مراد رسول ﷺ او دده اتباع ده::** دالله تعالى په لاره كښي مشقت اوچتونكونه مراد رسول الله ﷺ. درسول الله ﷺ اصحاب، اودحضور ﷺ تابع فرمان خلق دي. چه ترقيامته پوري وي نوفرماني چه مونږ به ددي كوشش كونكورهنماني كوواوپه دنيااودين كښي به دوي ته لاري ښائيو.

حضرت ابواحمدهمداني ؒ فرماني چه ددي نه مراددادي چه كوم خلق په خپل علم باندي عمل كوي الله تعالى دوي ته ددوي په كارونوكښي هدايت وركوي چه دهغوي په علم كښي نه وي. دابوسليمان داراني ته چه كله داذكركيږي نودوي فرماني چه دچاپه زړه كښي څه خبره پيداشي اگركه هغه ښه خبره وي مونږلره په هغي باندي عمل كول پكارنه دي. ترڅوپوري چه دقران اوحديث نه هغه خبره ثابته شوي نه وي. كله چه ثابته شي نوعمل دي اوكړي اودالله تعالى حمددي اوكړي چه دهغه په زړه كښي راغلي ده هم هغه په قران اوحديث كښي هم راووته، الله تعالى دمحسنينوسره دي.

**د احسان مطلب:** حضرت عيسى ابن مريم ؑ فرماني چه احسان ددي نوم دي چه څوك تاسره بدسلوك اوكړي نوته دهغه سره نيك سلوك اوكړه. داحسان كونكي سره داحسان كولونوم احسان نه دي. والله اعلم.

**«الحمدلله»** دالله تعالى په فضل اوكرم سره دسوره عنكبوت تفسيرختم شو.

| آياتونه | | سورة الروم مكية وهي ستون اٰية وست ركوعات | | ركوع ګاني |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۶۰ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۶ |

الٓمّٓ ۝۱ غُلِبَتِ الرُّوۡمُ ۝۲ فِيۡۤ اَدۡنَى الۡاَرۡضِ وَهُمۡ

الف . لام . میم | غلبه حاصله کړې شوه په روم باندې| په نزدې زمکه کښې | او هغوئ به |

الم : رومیانو (دشام دملک) په نزدې علاقو کښې (دایران دلاسه) ماتې اوخوړله| او هغوی به

مِّنۡۢ بَعۡدِ غَلَبِهِمۡ سَيَغۡلِبُوۡنَ ۝۳ فِيۡ بِضۡعِ سِنِيۡنَ ؕ لِلّٰهِ الۡاَمۡرُ

روستو دمغلو بوالی خپل نه | زر غالب شی | په یو څو کلونو کښې | خاص الله لره دې | اختیار

ددې ماتې (شکست) نه پس په یو څو کاله کښې دننه دننه بیا غالب شی . | وړاندې هم د الله تعالی

مِنۡ قَبۡلُ وَمِنۡۢ بَعۡدُ ؕ وَيَوۡمَئِذٍ يَّفۡرَحُ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ۝۴

مخکښې (یعنی اول هم) | او روستو هم | او په دغه ورځ به | خوشحالی کوی | مومنان |

اختیار وو| او روستو هم(اختیار) د هغه دې | او په دغه ورځ به مسلمانان د الله تعالی په مدد

بِنَصۡرِ اللّٰهِ ؕ يَنۡصُرُ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَهُوَ الۡعَزِيۡزُ الرَّحِيۡمُ ۝۵

په امداد دالله سره | امداد کوی الله | دهغه چاچې خوښه ئې شی | او هغه | غالب دې | مهربانه دې |

خوشحالی کوی | هغه چې دهرچا باره کښې اوغواړی مدد ورسره کوی |اوهغه زبردست اورحم کونکې دې

وَعۡدَ اللّٰهِ ؕ لَا يُخۡلِفُ اللّٰهُ وَعۡدَهٗ وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ

دا وعده دالله ده | خلاف نهٔ کوی الله | دوعدې خپلې | ولیکن | اکثر خلق |

دا د الله ﷻ وعده ده| الله ﷻ دخپلې وعدې نه هیڅ کله خلاف نه کوی | خوزیات خلق

لَا يَعۡلَمُوۡنَ ۝۶ يَعۡلَمُوۡنَ ظَاهِرًا مِّنَ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ۖۚ وَهُمۡ

نهٔ پوهیږی | او پوهیږی خلق | په ظاهری اړخ | دژوند ددنیا نه | او دوئ |

په دې نه پوهیږی | ........داخلق خو بس ددنیا دژوند په ظاهری خبرو پوهیږی | او دوی د

عَنِ الۡاٰخِرَةِ هُمۡ غٰفِلُوۡنَ ۝۷

داخرت نه | هم دوئ | غافله دی |

آخرت نه بیخی ناخبره دی |

قوله تعالی:: وَهُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ غَلَبِهِمۡ سَيَغۡلِبُوۡنَ ۝ دا ایتونه هغه وخت نازل شوهرکله چه ساه پورشاه فارس رومیان به غالبه شی یوه عظیم الشان پیشنګوئ:: دشام اوجزیره او خواوشاعلا قوباندې غالب شو.اودروم بادشاه هرقل تنګ شواوپه قسطنطنیه کښې محصورشو.ترډیره وخته پورې محاصره وه په اخره کښې حالات بدل شواودهرقل فتح اوشوه.په تفصیل سره بیان مخکښې راځی،په مسند احمد کښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه ددې ایت په باره کښې روایت

دې چه رومیانوته شکست اوشو،اومشرکانوپه دې باندې ډیرې خوشحالئ اوکړې.ځکه چه ځنګه دوی بت پرست ووهم دغه شان دایران والا هم دوی په شان وو،اودمسلمانانوخوښه وه چه رومیان غالب شی،ځکه چه هغوی کم ازکم اهل کتاب خووو.

**د.ابو بکر صدیق ﷺ د مشرکانو سره شرط**::حضرت ابوبکرصدیقﷺچه کله داذکرحضورﷺته اوکړو نو حضورﷺاوفرمائیل چه رومیان به ډیرزرغالب شی.صدیق اکبرﷺچه کله داخبرمشرکانوته اورسولو نو هغوی ورته اوونیل،نوهغوی ورته اوونیل چه راځه شرط اوتړه اووخت مقررکړه.که رومیان په دغه موده کښې غالب نه شونوته به مونږ ته دومره دومره راکوې،اوکه ته ریښتونې اوختې نومونږ به تاته دومره دومره درکوو.دپنځوکالووخت مقررشو.هغه موده پوره شوه،اورومیان غالب رانغلل،نوحضرت ابوبکرﷺخدمت نبویﷺته داخبراورسولو،حضورﷺدوی ته اوفرمائیل چه تادلسوکالوموده ولې مقرر کړې نه وه،سعیدابن جبیرﷺوائي چه په قران کښې دمودې دپاره لفظ(بضع)استعمال شوې دې اودلسونه په کمویاندې ددې اطلاق کیږی.نوهم دغسې اوشوپه لس کاله کښې دننه دننه رومیان بیاغالب شو.

امام ترمذی دې حدیث ته غریب وئیلې دې.حضرت سفیان ؒفرمائی چه دبدردجنګ نه پس رومیان هم په فارسیانوپه غالب شو،دحضرت عبداللهﷺفرمان دې چه پنځه څیزونه تیرشوې دی، دخان، او لزام،اوبطشه،اودشق قمرمعجزه،اودرومیانوغالب راتلل.په بل روایت کښې دی چه دحضرت ابوبکر ﷺ شرط داؤوکالووو.حضوراکرمﷺدهغهٔ نه تپوس اوکړوچه (بضع)په تاسوکښې څه معنی لری؟جواب ئې ورکړوچه دلسونه کم.بیائې ورته اوفرمائیل چه لاړشه اوموده دوه کاله نوره هم زیاته کړه.نوهم په دغه موده کښې دننه دننه درومیانودغالبه کیدوخبرعربوته راورسیدو،اومسلمانانو خوشحالئ اوکړې.هم ددې بیان په دې ایتونوکښې دې.په بل روایت کښې دی چه مشرکانودحضرت صدیق نه داایت واوریدونووې وئیل چه ته په دې کښې هم ځان ریښتونې ګڼرې؟دوی ورته اوفرمائیل هو.په دې باندې شرط اوتړلې شواوهغه موده تیره شوه اورومیان غالب رانغلل.حضوراکرمﷺته چه کله ددې شرط پته اولږیده نوحضورﷺغمژن شواوجناب صدیقﷺته ئې اوفرمائیل چه تاداسې ولې اوکړل.جواب ورته ملاو شو چه دالله تعالی درسولﷺپه ریښتونوالې باندې باورکولوسره.حضورﷺورته اوفرمائیل چه بیالاړشه اوموده لس کاله مقررکړه.خوا کښې څیزهم زیاتولې شی.دوی مشرکانوسره دوباره دمودې زیاتولوشرط منظورکړو.لالس کاله پوره شوې نه ووچه رومیان په فارس باندې غالب راغلل.اومدائن ته دهغوی فوځونه راورسیدل اودرومیه بناء هغوی واچوله،حضرت صدیقﷺدقریشونه دشرط مال واخستو او حضورﷺ ته ئې راوړو.حضورﷺورته اوفرمائیل چه داصدقه کړه.په بل روایت کښې دی چه داواقعه د شرط تړلودحرام کیدونه مخکښې ده،په دې کښې دی چه مودهٔ شپږ کاله مقررشوې وه چه داپیشن ګوئی پوره شوه اورومیان غالب شونودیرومشرکانوایمان راوړو.(ترمذی)

**یوه عجیبه واقعه**:: یوه ډیره عجیبه قیصه امام سنیدبن داودپه خپل تفسیرکښې لیکلې ده،چه عکرمه ﷺ فرمائی چه په فارس کښې یوه ښځه وه چه دهغې خامن به زبردست پهلوانان یابادشاهان وو.کسری یو ځلې هغه راوغوښته اوهغې ته ئې اوونیل چه زهٔ رومیانوباندې یولښکرلیږل غوارم.اوستاپه اولاد کښې یوکس د دې لښکرسردارجوړول غوارم.اوس ته مشوره راکړه چه څوك سردارجوړ کړم؟هغې ورته اوونیل چه واوره زمافلانې خوې هرمزخودلومبړې نه زیات مکاراودشکری (یوقسم مرغئ ده) نه زیات هوشیاردې.دویم خوې فرحان دغشی په شان دې.دریم هلك شهربرازدتولونه زیات حلیم الطبع دې.اوس چه ستاکوم یوخوښ وی سرداری ورکړه.بادشاه دسوچ فکرنه پس شهربراز ته سرداری ورکړه.دهٔ لښکردخان سره بوتلو.اورومیانوسره اوجنګیدواوپه هغوی باندې غالب راغې،د هغوی لښکرې ئې کټ

کړې اودهغوی بناورنه ئې وران کړل.اودهغوی باغونه ئې برباد کړل.دغه شین ابادملك ئې ویران اوشاړکړو،اذرعات اوبصری سره دعربوحدونه ملاویدل هلته یوه زبردسته معرکه اوشوه اوهلته فارسیان په رومیانویاندې غالب راغلل.چه په هغې باندې قریشوخوشحالۍ کولې،اومسلمانان پرې خفه وو.کفارقریش به مسلمانانوته پیغورونه ورکول چه ګورئ تاسواونصرانیان اهل کتاب دی.اوفارسیان بې تعلیمه دی. زمونږ والا په تاسویاندې غالب شو.هم دغه شان به موږ هم په تاسویاندې غالب کیږو،اوکه جنګ اوشونومونږ به درته اوښائیوچه تاسو به ددې اهل کتاب په شان زمونږ دلاسه شکست خورئ.په دې باندې دقران داایتونه نازل شو.

حضرت ابوبکرصدیق﵁چه داایتونه واوریدل نومشرکانوته راغې اووې فرمائیل چه په دې فتح باندې غرورمه کوئ دابه ډیرزرپه تاوان کښې بدله شي.اوزمونږ رونړه اهل کتاب به ستاسوپه رونړوغالبه شي.ددې خبرې یقین اوکړئ ځکه چه دازماخبره نه ده بلکه دازمونږ دنبی اکرمﷺپیشن ګوئی ده.دانې چه واوریدل نوابی بن خلف پاسیدواووې وئیل چه اې ابوفضیل ته دورغ وائې،دوی ورته اوفرمائیل چه اې دالله دشمنه،ته دروغژن ئې،هغه ورته اووئیل چه ښه ده زه دلسواوښانوشرط تړم.که تر دریو کالو پورې رومیان په فارسیانویاندې غالب راغلل،نوزه به تاته لس اوښې درکوم.ګنې ته به ماته راکړې، حضرت صدیق اکبر﵁داشرط قبول کړو.بیاراغې اورسول اللهﷺته ئې ددې خبرې ذکر اوکړو .نو حضور ﷺ ورته اوفرمائیل چه ماتاته ددریوکالونه وو وئیلي،(بضع)لفظ په قران کښې دی. او دادډریونه تر نهو پورې وئیلي کیږي.لاړشه اوښې هم زیاتې کړه اوموده هم زیاته کړه.حضرت ابوبکر ﵁ لاړوکله چه ابی بن خلف ته اورسیدونوهغه ورته اووئیل چه ګیدې شی ته پښیمانه ئې؟دوی ورته اوفرمائیل واوره زه خود مخکښې نه هم زیات تیارراغلي یم.راځه چه موده زیاته کړواودشرط مال هم زیات کړو.نوسل اوښان مقررشو، اوموده نهه کاله مقررشوه،په دې موده کښې رومیان په فارسیانویاندې غالبه راغلل ،او مسلمانان په قریشویاندې خواره شو.دررومیانودغلبې واقعه داسې اوشوه چه کله فارسیان غالبه شو نو د شهربرازرورفرخان شراب څکل اووې وئیل چه ماليدلي دی چه ګویازه دکسری په تخت باندې راغلي یم.اودفارس بادشاه جوړشوې یم.داخبرکسری ته اورسیدو،کسری شهربرازته اولیکل چه زمادې خط ملاویدوسره خپل دارورقتل کړه اوددهٔ سرماته راولیږه.شهربرازورته اولیکل چه اې بادشاه ته دومره تندی مه کوه،دفرحان په شان بهادراودزمری دجرات والا اوددشمن په ګنړه کښې ننوتونکې به ته بل بیانه مومې.بادشاه ورته بیا په جواب کښې اولیکل چه ددهٔ نه زیات بهادراوشیردل پهلوان زماپه دربار کښې ډیونه یوزیات بهترموجوددی.ته ددې غم مه کوه،اوزمادحکم فوراً تعمیل اوکړه. شهر براز ورته بیا د دې جواب اولیکلواوپه دویم ځل ئې بادشاه کسری پوهه کړو،په دې باندې بادشاه دغصې نه لمبه شو ،هغهٔ اعلان اوکړوچه دشهربرازنه ماسرداری واخسته اودهغهٔ په ځائې دهغهٔ رورفرحان مادخپل لښکر سپه سالارمقررکړو.اوهم ددې مضمون یوخط ئې اولیکلواوقاصدسره ئې شهربرازته اولیږلو،چه ته دنن نه معزول ئې،اوته خپله عهده فرحان ته ورکړه.اووسره ئې قاصدته ته یوبل خط ورکړوچه کله شهربراز خپله عهده پریږدی اوفرحان دهغهٔ په عهده راشي نوته هغهٔ ته زمادافرمان ورکړه،قاصدچه کله هلته اورسیدونوشهربرازدخط لوستوسره اووئیل چه ماته دبادشاه حکم منظوردی.زه په خوشحالۍ سره خپله عهده فرحان ته ورکوم.نوهغهٔ دتخت نه کوزشو،اوفرحان ته ئې قبضه ورکړه.فرحان چه کله دبادشاهۍ په تخت باندې کښیناستواولښکراطاعت قبول کړونوقاصدهغهٔ دویم خط دفرحان په وړاندې پیش کړو.په کوم کښې چه دشهربرازدقتلولواودهغهٔ دسردبادشاه دربارته دلیږلوفرمان وو.فرحان چه دا اولوستلو نو شهربراز ئې راوغوښتلواودهغهٔ دقتلولوحکم ئې ورکړو. شهربرازورته اووئیل چه دومره تندی مه کوه،ماوصیت لیکلوته خوپریږده.هغهٔ منظوره کړه،نو شهربراز خپل دفترراوغوښتواوهغه کاغذونه چه بادشاه کسری دفرحان دمرګ دپاره هغهٔ ته لیکلي ووهغه ټول

نې راوښکل اوفرخان ته ئې وړاندې کړل.اوورته ئې اوونيل چه اوګوره دومره سوال اوجواب
زمااودبادشاه ترمينځه ستاپه باره کښې شوې وو، خو ما د عقل نه کاروا خستواوتندی مې اونه
کړه.اوته ديوخط کتوسره زمامرګ ته تيارشوې،لږ شان سوچ اوکړه ،ددې خطونوليدوسره دفرخان
سترګې پرانستې شوې اوهغه فوراً دتخت نه کوزشواوخپل رور شهربراز ئې بيامالك جوړکړو.
شهربرازهم هغه وخت شاه روم هرقل ته خط اوليکلوچه زه تاسره پټ ملاقات کول غواړم.په يوه کار
باندې مشوره کول دی.دانه خوزه دڅه قاصدپه ذريعه وئيلې شم اونه درته په خط کښې ليکلې شم.بلکه
زه داهم ستاپه وړاندې پيش کوم.پنځوس کسان دځان سره راوله اوپنځوس کسان به زماسره وی.
قيصرته چه کله داپيغام اورسيدونوهغه ده سره دملاقات دپاره راروان شو.ليکن داحتياط دپاره ئې
دځان سره پنځه زره سواره کسان راوستل اودځان مخکښې ئې جاسوسان هم اوليږل چه که څه چل وی
ياڅه مکروی نوچه ښکاره شی.جاسوسان راغلل اوخبرئې ورکړوچه هيڅ خبره نشته،شهربرازيواځې
دخپل ځان سره پنځوس سواره راوستې دی،اودهغه سره نورهيڅوك نشته،نوقيصرهم مطمئن شو او
خپل سواره ئې واپس کړل.اودخپل ځان سره ئې صرف پنځوس کسان اوساتل،کوم ځائې چه د ملاقات
دپاره مقررشوې وو،هلته اورسيدل،هلته يوه ريښمينه قبه وه،دادواړه هلته يواځې کښيناستل،پنځوس
کسان بيل پرېښودې شو،دواړه هلته بې وسلې وو،صرف چهړې ورسره وې.اوددواړوطرفونه يو يو
ترجمان هم ورسره وو.خيمې ته چه اورسيدل نوشهربرازورته اووئيل چه اې دروم بادشاه خبره داده چه
ستاملك لره بربادونکی اوستالښکروته شکست ورکونکی مونږ دواړه رونړه يو.مونږ په خپله چالاکئ
اونرتوب سره په دې ملك قبضه کړې ده.ليکن اوس زمونږ بادشاه کسری زمونږ سره حسد کوی.اوزمونږ
مخالف جوړشوې دې.ماته هغه زمادروردقتلولودپاره پيغام راوليږلو،ماهغه پيغام اونه منه،نوهغه په
چالاکئ سره زماروزمادقتل دپاره راوليږلو،ددې وجې نه مونږ دواړواوس دافيصله کړې ده چه مونږ به
ستالښکرته راشواودکسری لښکروسره به ستادطرف نه جنګيږو،قيصرپه خوشحالئ سره داخبره منظور
کړله،بياد دواړو ترمينځه په اشارواشاروکښې خبرې اوشوې چه دهغې مطلب داوو چه دادواړه ترجمانه
قتل کړو،داسې اونه شی چه دارازښکاره شی.ځکه چه چرته ددوی په ځائې ددريوغوږونوته يوه خبره
اورسی نوهغه خوره شی.دواړوپه دې اتفاق اوکړواواودريدل،اوهريوپه خپله چاړه خپل ترجمان قتل
کړو،بياالله تعالی کسری هلاك کړو،اودحديبيه په ورځ ددې خبررسول اللهﷺته ملاوشو.درسول اللهﷺ
اصحاب په دې باندې ډيرزيات خوشحاله شو،داعجيبه تفصيل اوعجيبه خبره ده.

**د ايتونو تشريح او د ورميانو متعلق بحث**::اوس دايت دالفاظوپه باره کښې واورئ،حروف مقطعه چه د
سورتونو په شروع کښې وی دهغې بحث خو مونږ مخکښې کړې دې.دسوره بقرې شروع اوګورئ.
روميان ټول په ټوله دعيص ابن اسحاق بن ابراهيم دنسل نه دی،دوی دبنی اسرائيلودتره ځامن دی.
روميانوته بنی اصفرهم وانی،دوی ديونانيانوپه مذهب باندې وو.يونانيان ديافث بن نوح داولادنه
دی.دترکيانودتره خامن دی.دوی دستوروعبادت کونکی وو.او اوه واړه ستوری به ئې منل اودهغې
عبادت به ئې کولو،دوی ته متحيره هم وئيلې شی،دوی به قطب شمالی قبله ګنړله،ددمشق بنياددوی
دلاسه اوشو،دوی هلته خپله عبادت ګاه جوړه کړه،چه د هغې محرابونه دشمال طرف ته دی.دحضرت
عيسیؑ دنبوت نه پس تردرې سوه کاله پورې دوی په خپلوزړوعقيدوباندې وو،په دوی که به چه
څوك دشام اودجزيرې بادشاه شوهغه ته به قيصرونيلې شو ،د ټولونه مخکښې درروميانوبادشاه
قسطنطين ابن قسطس نصرانی مذهب قبول کړو،دهغه دمورنوم مريم وو،هيلانيه غندقانيه وو.دحران
اوسيدونکې وه.اول هغې نصرانيت قبول کړې وو،اودهغې په وئيلودهغې ځوی هم دامذهب قبول
کړو،دې ډيرفلسفی،عقلمند ،اومکارانسان وو.داهم مشهوره ده چه ده په اصل کښې دزړه نه دامذهب
قبول کړې نه وو،دده په زمانه نصرانيان دلته راجمع شو،اوپه خپلوکښې مذهبی چهيرچهاړ،اختلافات،

اومناظري شروع شوې.دعبدالله بن اريوس سره لوې لوې مناظرې اوشوې.اودومره ډيرګډوډې اوتفريق اوشو،چه دبيان نه بهرده.درې سوه اتلسوپادريانوپه شريکه يوکتاب اوليکلوچه بادشاه ته ورکړې شو.اوهغه شاهي عقيده اومنلې شوه.اوهم دې ته امانت کبرى ونيلې کيږى.چه په حقيقت کښې خيانت حقيره وو،هم دغه فقهي کتابونه په دغه زمانه کښې اوليکلې شو.دې کښې دحلال اوحرام مسئلې بيان شوې.اوددوى عالمانوچه څه غوښتل په هغې کښې اوليکل،چه څومره نې په زړه کښې راتلل کمې زياتې،په اصلي دين مسيح کښې اواصلي مذهب کښې تحريف اوتبديلې اوشو.دنمرخاتۀ طرف ته مونځونه کول شروع شو.دهغتې ورځې په ځائې نې د اتوار ورځ لويه جوړه کړله.دصليب عبادت شروع شو.خنزيرحلال اوګرځولې شو،اوډيرتهوارونه ايجادکړې شو .لکه عيدصليب،عيدغطاس،وغيره وغيره.بياددې عالمانوسلسلې قائمې کړې شوې،چه يوځوبه لوې پادرى وو ،بيادهغۀ نه لاندې درجه په درجه به محکمې وې.رهبانيت اوترک دنيابدعت ايجادکړې شو.کنيسې اوګرجې ډيرې جوړې کړې شوې.اوقسطنطينه ښاربنيادکيښودې شو.او ددې لوې ښارنوم هم دبادشاه په نوم باندې کيښودې شو.دې بادشاه دولس زره ګرجې جوړې کړې.ددريومحرابونو بيت لحم جوړشو.ددۀ مورهم قمامه جوړه کړه.دې خلقوته ملکيه وائى،ځکه چه داخلق دخپل بادشاه په دين باندې وو.ددې نه پس يعقوبيه،بيانسطوريه،دوى دنسطورمقلدوو.بياددوى نورې ډيرې ډلې وې.ځنګه چه په حديث کښې دى.چه ددوى دوه اويادلې شوې.ددوى بادشاهي برابرراروانه وه.ديونه پس بل قيصر به راتلو،تردې پورې چه اخرى قيصرهرقل شو.دې دټولوبادشاهانونه زيات عقلمنداوعالم وو.هوښيار، دوراندېش،اوترلرې پورې ليدوکښې نې څپله ثاني نه لرله.دۀ سلطنت ډيرزيات وسيع کړو.اوملکت نې ترلرې لرې پورې خورکړو.ددۀ په مقابله کښې فارس بادشاه کسرى اودريدو،اوړو وړوبادشاهوهم ددۀ ملګرتيااوکړه.ددۀ بادشاهي دقيصرنه هم زياته لويه وه.داخلق مجوسيان وو.داورعبادت به نې کولو.په پورتنې روايت کښې خودى چه ددۀ سپه سالارددۀ مقابلې ته راغې.

**دکسرى او قيصر صلح اود قيصر چالاکى:**:ليکن مشهوره خبره داده چه پخپله کسرى ددۀ مقابلې ته راغې، قيصرته شکست اوشو.اوهغه په قسطنطنيه کښې ګيرشو.نصرانيانودهغۀ ډيرزيات عزت کولو.اګرچه کسرى ترډيرې مودې پورې دهغۀ محاصره اوکړله خودارالسلطنت نې فتح نه کړې شو.ددې يوه وجه داوه چه ددې ښارنيمه برخه د سمندرطرف ته وه.اونيمه اوچې سره لږيدلې وه.نوبادشاه قيصرته به مدداوسامان دسمندريه لاره برابر ملاويدو.په اخره کښې قيصريوچال اوکړو.هغۀ کسرى ته جواب اوليږلوچه تۀ څه غوارې زمانه واخله. او په کوموشرطونوچه غوارې زماسره صلح اوکړه.کسرى په دې باندې خوشحاله شو.اودومره مال نې ترې اوغوښتوچه هغۀ اودۀ کۀ په شريکه داماال راجمع کول غوښتل نوهم راجمع کول نې ممکن نه وو. قيصر دا قبوله کړه.ځکه چه هغۀ دې سره دکسرى دبې وقوفئ پته اولګوله.چه دې هغه څيزغوارې چه دهغې جمع کول ددنيااختيارنه بهردى.بلکه که ټوله دنياراجمع شى نوددې لسمه حصه هم جمع کولې نه شى.قيصرکسرى ته خبراوليږلوچه ماته اجازت ملاويدل پکاردى چه زۀ په خپل ملک شام کښې اوګرځم اودا دولت راجمع کړم.اوتاته نې حواله کړم.هغۀ دادرخواست منظورکړو.اوس دروم بادشاه خپل لښکر راجمع کړو،اوهغوى ته نې اووئيل چه زۀ ديوضرورى اواهم کارډپاره دخپلوخپلوانوسره څم،که په يوکال کښې دننه راغلم نوداملک زمادې.ګنې تاسوته اختياردې چه څوک موخوښ وى خپل بادشاه نې مقرر کړئ. هغوى ورته جواب ورکړوچه زمونږ بادشاه خوهم تۀ نې،خواه که ترلسوکالوپورې هم واپس نه شې نوځه اوشو.دۀ ددې ځائې يومختصرشان دجانبازانوډله دځان سره کړه اوچپ چاپ اووتو.په پټولارو باندې ډيريه هوښيارتيا،چالاکئ، اواحتياط سره ډيرزردفارس ښارونوته اورسيدو.اوناګهانه نې پرې حمله اوکړه.چونکه ددې ځائې فوځونه خوروم ته تلې وو،عواموبه ترکومې پورې مقابله کوله.هغۀ قتل عام شروع کړو،اوڅوک چه ورته مخامخ راغلل

نودتوري لاندې ئې كړل.اوهم هغسې روان وو،تردې پورې چه مدائن ته اورسيدو،چه دكسرى دسلطنت كرسئ وه.دهغه ځائې حفاظت كونكې فوځ باندې هم غالب راغې اوهغوى ئې قتل كړل.

**كسرى ته د قيصر خط**::اودخلورواړوطرفونه ئې مال جمع كړو.اودهغوى ټولې ښځې ئې قيدكړې اوټول جنګيدونكې ئې قتل كړل.دكسرى خوئې ئې ژوندې ګرفتاركړو.دهغه دمحل سراء ښځې ئې ژوندې ګرفتارې كړې،اوددربارښځې هم اونيولې شوې،اودهغه هلك سرګنجې كړې شواوپه خربانډې سورسره دښځونې دكسرى طرف ته اوليږلو.اوورته ئې اووئيل چه واخله كوم مال اوښځې اوغلامان چه تاغوښتل هغه حاضردى.كله چه داقافله كسرى ته اورسيده نوكسرى ډيرزيات خفه شو.دهٔ تراوسه پورې دقسطنطيه محاصره كړې وه پروت وو.اودقيصردواپسئ انتظارئې كولو،چه دهٔ ته ددهٔ ټول خاندان اوحرم سراء دداسې ذلت په حالت كښې راورسيدهٔ.دې سخت غضبناك شو،اوډيرسخته حمله ئې په ښارباندې اوكړه.ليكن په هغې ورته كاميابى ملاونه شوه.اوس دې دنهرجيجون طرف ته لاړ،چه قيصرهلته حصاركړى،خكه چه فارس نه دقسطنطنيه نه د راتلوهم دغه يوه لاره وه.

**د قيصر بله چالاكي**:: قيصرچه داواوريدل نودمخكښې نه ئې يوه زبردسته دهوكه اوكړه.يعنى خپل لښكر دسينددهانې په خواكښې پريخودهٔ،اوپه خپله څه لږ شان كسان ئې دخان سره بوتلل او دابو د بهيدو په طرف روان شو. د يوورځ دمزل كولونه پس هغهٔ چه دخان سره كوم ګند،خاشنرهٔ،اوسوتې وغيره راوړې وې هغه ئې په اوبوكښې لاهوكړې.داځيزونه په اوبوكښې بهيدل اودكسرى دلښكرپه خواكښې تيرشو.نوهغوى پوهه شوچه قيصرپه دې ځائې باندې تيرشو.دادهغهٔ دخناورواثاردى.اوس قيصرواپس خپل لښكرته راغې او كسرى دهغهٔ په لټون كښې مخكښې لاړو.قيصرسره دخپله لښكره دجيحون دهانه باندې پوريوتواولاره ئې بدله كړه اوقسطنطنيه ته اورسيدو.په كوم ورځ چه دې خپل دارالسلطنت ته اورسيدو نصرانيانو ډيرې زياتې خوشحالئ اوكړې.

**كسرپر كډوډ شو او قيصر غالب شو**::كسرى ته چه كله دااطلاع ملاوشوه نودهغهٔ عجيبه حال شو، د تيختې لاره ورسره نه وه،نه ئې روم فتح كړې شواونه ورسره فارس پاتې شو.په حيرانتياكښې پاتې شو. او روميان غالب شول.دفارس ښځې اودهغهٔ ځائې مال دهغوى په قبضه كښې راغې،داټول كارونه په نهه كاله كښې اوشو.اوروميانوخپل بيللې ملك دفارسيانونه دوباره واخستو،اومغلوبه شوې بياغالبه شو. دا ذرعات اوبصرى په معركوكښې فارس والا غالب شوې وو،دادملك شام هغه حصه وه چه دحجازسره ملاويده.داقول هم دې چه داشكست ورته په جزيرهٔ كښې شوې وو،چه دروميانودسرحدمقام ووا و د فارس سره ملاويدو.والله اعلم.بياپه نهه كاله كښې دننه دننه روميان په فارس باندې غالب شو.

په قران كريم كښې د(بضع)لفظ دې.اوددې اطلاق په نهه باندې كيږى.اوهم دغه تفسيرددې لفظ په ترمذى اوابن جريروالا حديث كښې دې.حضوراكرمﷺحضرت صديقؓ ته اوفرمائيل چه تاله احتياطاً لس كاله كيښودل پكاروو.خكه (بضع) لفظ اطلاق دريونه واخله ترنهوپورې باندې كيږى.ددې نه پس (قبل) او(بعد)باندې پيش اضافت لرې كولودچې نه دى.يعنى ددې نه مخكښې اوددې نه پس حكم هم د الله تعالى دې.په هغه ورځ په كومه چه روم په فارس باندې غالب شى مسلمانان به خوشحالئ كوى.

**اياد روم غلبه د بدر په ورخ وه؟**::دا كثروعالمانوقول دې چه دبدردجنګ په ورځ روميان په فارس باندې غالب راغلي وو.ابن عباسؓ،سدى ثورى اوابوسعيد هم دغه فرمائى.دهوې دلې خيال دې چه غلبه دحديبيه په كال باندې شوې وه.عكرمهؒ،زهرى اوقتاده وغيره هم دغه قول دې.بعضوددې توجيه دابيان كړې ده چه قيصرروم نذرمنلې ووچه كه الله تعالى دې په فارس باندې غالب كړونودې به ددې دشكريې په طورپياده بيت المقدس ته خى.چنانچه هغهٔ نذرپوره كړواوبيت المقدس ته لاړو.دې هم دلته ووچه دحضورﷺخط مبارك ورته اورسيدهٔ،چه حضورﷺدحضرت كلبىؓ په معرفت سره دبصرى

ګورزته لیږلي وو،اوهغهٔ هرقل ته اورسولو،هرقل ته چه ځنګه دحضورﷺخط مبارك ملاوشونوپه شام کښې چه کوم دحجازي عرب ووهغوی ئې خان ته راوغوښتل.په دوی کښې ابوسفیان،صخربن حرب اموی هم وو.اوپکښې نورهم دقریشوعزتمندخلق موجودوو.هغهٔ ټول خپل مخې ته کښینول اوتپوس ئې ترې اوکړو.چه په تاسوکښې دهغهٔ دټولونه نزدې رشته دارڅوك دې؟چاچه دنبوت دعوی کړې ده.ابوسفیان ورته اووئیل زهٔ یم.بادشاه هغه مخکښې کښینولواودهغهٔ ملګری ئې دهغهٔ شاته کښینول.اوهغوی ته ئې اووئیل چه ګوریٔ زهٔ ددې کس نه څو تپوسونه کوم که دې دڅه خبرې غلط جواب راکړی نوتاسوددهٔ دروغ ښکاره کویٔ.دابوسفیان قول دې چه که ماسره ددې خبرې ویره نه وې چه کهٔ زهٔ دروغ اووائیم نوداخلق به ظاهرکړی اوبیابه ددې دروغونسبت زماطرف ته کوی نومابه یقیناً دروغ وئیلي وې.اوس ترې هرقل ډیرتپوسونه اوکړل.مثلاًدحضورﷺدحسب نسب په باره کښې، د حضورﷺداوصافواوعاداتوپه باره کښې وغیره وغیره.پدې کښې یوسوال داهم چه ایاهغه غداری کوی؟ ابوسفیان ورته اووئیل چه ترننه پورې خوهغهٔ کله بدعهدی،وعده خلافی اوغداری نه ده کړې.په دې وخت کښې زمونږ دهغهٔ سره یوه معاهده ده.پته نشته چه هغه به په دې کښې څه کوی؟دابوسفیان ددې قول نه مرادصلح حدیبیه ده،په کومه چه دحضورﷺاودقریشوترمینځه داخبره مقررشوې وه،چه تر لسو کالو پورې به په خپل مینځ کښې هیڅ جنګ نه کوو.داواقعه په دې قول باندې پوره دلیل جوړیدې شی چه رومیان په فارس باندې دحدیبیه په کال باندې غالب راغلي وو.ځکه چه قیصرخپل نذردحدیبیې نه پس پوره کړې وو،والله اعلم.خوددې جواب هغه خلق څوك چه وائی چه دروم په فارس باندې غلبه دبدرپه کال کښې شوې وه د اور کولې شی چه چونکه دملك اقتصادی اومالي حالت ډیرزیات پریوتې وو،ددې وجې نه تر څلورو کالو پورې قیصرخپله پوره توجه دملك خوشحالۍ اوسوکالۍ ته ورکړه.ددې نه پس ددې طرف نه اطمینان کیدونه پس هغهٔ خپل نذرپوره کولوډپاره روان شو.والله اعلم.

**قوله تعالی:: وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ**

**د مسلمانانو د رومیانو په فتح خوشحالي او ددې وجه::** دا اختلاف څه داسې خاص خبره نه ده، او مسلمانان درومیانوپه غلبه باندې خوشحاله شوځکه چه که هغوی هرځنګه ووبیاهم هغوی اهل کتاب وو. او د هغوی په مقابله کښې دمجوسیانوډله وه،چه دهغوی دکتاب سره هیڅ قسمه تعلق نه وو.نولازمی خبره وه چه مسلمانان به دهغوی په غلبه باندې خفه وو،اودرومیانوپه غلبه باندې به خوشحاله وو.په خپله په قران کښې موجوددی چه دایمان والودټولونه زیات دشمنان یهوداومشرکان دی.اوددوی په دوستۍ ساتلو کښې هغه کسان دټولونه وراندې دی چه خپل خان ته نصاری وائی،ځکه چه په دوی کښې عالمان اودرویش خلق دی اوتکبرنه کوی.دقران په اوریدوسره دوی په ژراشی،ځکه چه په حق باندې پوهه شی،بیااقرارکوی چه اې الله،مونږ ایمان راوړوتهٔ مونږ هم په منونکو کښې شمارکړه.پس دلته ئې هم اوفرمائیل چه مسلمانان به په دې ورځ خوشحاله وی.هغه چه دچاغواړی مددکوی،هغه ډیرغالب ډیرلوې مهربانه دې.

حضرت زبیرکلابیرحفرمائی چه مادفارسیانوپه رومیانوباندې غالب کیدل،بیادرومیانوپه فارسیانو باندې غالب کیدل،بیاپه روم اوفارس دواړوباندې دمسلمانانوغالب کیدل په خپلو سترګو د پنځلسو کالو دننه دننه اولیدل.په اخری ایت کښې ئې اوفرمائیل الله تعالی دخپلودشمنانونه په بدله اخستلو باندې قادراودخپلودوستانو خطاګانوګناهونومعاف کولووالادې.کوم خبرچه تاسوته درکړې شوې دې چه رومیان به ډیرزرپه فارس باندې غالب شی داداللهﷻخبردې،دالله تعالی وعده ده، دا د پروردګار فیصله ده،دانامکنه ده چه غلطه شي،اونه شی یابدله شی.څوك چه دحق سره نزدې وی الله تعالی هغه هم دالله تعالی نه لرې خلقوباندې غالبه کوی.اودالله تعالی حکمتونوباندې کم علمه خلق پوهیدې نه شی.اکثرخلق ددنیاعلم خوبنه لری،دهغې مشکلات په منتهونوکښې ختموی،په دې کښې

ښه دماغ جنګوي، ددې ښه بد ،نفع نقصان ډیرښه پیژني، په یونظرددې ښه بداوپیژني، د دنیا د ګټلو د پیسو دجمع کولوپه چل باندې ښه پوهیږي، خوددین په کارونوکښې، ډیرزیات جاهل، کم عقل، اوکم فهم وي.دلته ئې نه دماغ کارکوي، نه ئې په پوهه کښې راځي، اونه پکښې دغوراوفکرعادت وي،حضرت حسن بصري فرمائي، ډیرداسې هم شته چه مونځ هم ټیك نه شي کولې، خودرهم چه په لاس کښې اونیسي نوفوراً ئې وزن به درته اوښائي.ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه ددنیاداباديٰ، ددې د خوندونو، مزونو سوونوصورتونه ددوي په ذهن کښې راځي، خوپه دین کښې بالکل جاهل، اوداخرت نه بالکل غافل دي.

أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا فِي أَنْفُسِهِمْ

| ایا اونۀ کړو فکر دې خلقو | په نفسونو خپلو کښې |

| ایا دوئ په خپلو زړونو کښې دا فکر نه دې کړې

مَا خَلَقَ اللَّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا

نۀ دي پیدا کړي الله | اسمانونه | او زمکه | او هغه چې په منځ ددې دواړو کښې دي | مګر

چې الله ﷻ اسمانونه او زمکه اوددې دواړو په مینځ کښې چې کوم څیزونه دی هغه عبث نه دی

بِالْحَقِّ وَأَجَلٍ مُسَمًّى ط وَإِنَّ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ بِلِقَاءِ

په حقه سره | او دنیتې | مقررې سره | او بیشکه | ډیر | دخلقو نه | په ملاقات |

پیدا کړې ابلکه دیو حکمت دلاندې اودیوې مقررې نیتې دپاره پیدا شوی دی|اوډیرخلق هډو دخپل رب.

رَبِّهِمْ لَكَافِرُونَ ۝٨ أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوا

درب خپل سره | خامخا منکر دی | ایا نۀ ګرزي دوئ | په زمکه کښې | چې اوګوري |

سره دملاقات کیدو نه منکر دی | ایا دوئ په زمکه کښې نه دی ګرځیدلی | چې اوګوری

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ ط كَانُوا

چې څرنګې | وۀ | انجام | دهغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وۀ | وۀ هغوئ |

چې ددوئ نه وړاندینو خلقو انجام څه شو؟ | هغوئ (خو) ددوئ نه په طاقت کښې زیات وو

أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَأَثَارُوا الْأَرْضَ وَعَمَرُوهَا

زیات سخت | ددوئ نه | په لحاظ دطاقت سره | اواړولی ئې وه | زمکه | او اباده کړې ئې وه هغه

او په زمکه کښې ئیې کرونده هم ډیره کړې وه |او څومره چې نن دوئ اباده کړې ده

أَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوهَا وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ ط

زیاته | دهغې نه | چې اباده کړې ده دوئ | ورغلي وۀهغوئ ته|رسولان دهغوئ|دروښانه نښو سره

ددې نه ډیره زیاته هغوی اباده کړې وه |او هغوئ ته خپلو پیغمبرانو معجزې راوړلې وې

فَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ

پس نۀ وۀ الله | چې ظلم ئې کوۀ په هغوئ باندې| ولیکن وۀ هغوئ | په ځانونو خپلو باندې

اوالله ﷻ ورباندې ظلم نه کولو | خو هغوئ به پخپلو ځانونو ظلم کولو | ..................

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَظْلِمُونَ ؅ | ثُمَّ كَانَ | عَاقِبَةَ الَّذِينَ | أَسَآءُوا | | السُّوۡٓاٰی |
| چې ظلم ئې کوۀ | بیاشو | انجام دهغه کسانو | چې بد ئې کړي وو | | د ډیر بد |
| بیا کومو خلقو چې بدکارونه اوکړل؛ د هغوئ انجام ډیر بد شو؛ ځکه چې هغوئ د الله ﷻ | | | | | |
| أَنْ كَذَّبُوا | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | وَكَانُوا | بِهَا | يَسْتَهْزِءُوْنَ ؅ | |
| په دې وجه چې دروغ ئې ګنړلی وو؛ | ایتونه دالله | او وو هغوئ | په هغې | پورې چې توقې به ئې کولې | |
| ایتونه دروغ اوګنړل؛ ..................او په هغې پورې به ئې خنداګانې کولې ؛ | | | | | |

**قوله تعالی:: أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوا فِي أَنْفُسِهِمْ**

**دالله تعالی په نشاناتو کښې غوراوفکرکوئ:-** چونکه دکائنات ذره ذره دالله تعالی دقدرت نشان دې، او د هغهٔ په توحیداوربوبیت باندې دلالت کوی.ددې وجې نه ارشادکیږی چه په موجوداتوکښې غور او فکر کوئ اودالله تعالی دقدرت دې نشاناتوسره خپل مالك اوپیژنئ،اودهغهٔ قدراوتعظیم کوئ،کله عالم علوی ته ګورئ اوکله په عالم سفلی باندې نظراچوئ،اودمخلوقات په پیدائش باندې سوچ کوئ ،او پوهه شئ چه داخیزونه عبث اوبیکاره نه دی پیداکړې شوې،بلکه الله تعالی دادکاروالا اودخپل قدرت نشان جوړکړې دی.دهریوپوخت مقرردې.یعنی دقیامت ورځ،کوم چه اکثرخلق منی هم نهٔ.

**قوله تعالی:: أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ**

**د مخکښینو قومونو د هلاکتونو نه عبرت اخستل پکار دی::** ددې نه پس دنبیانوصداقت داسې ظاهروی چه اوګورئ ددوی دمخالفین انجام څومره عبرتناك شو؟ او د هغوی منونکوته څنګه ددواړوجهانوعزت ملاوشو.تاسواوګرځئ راوګرځئ اوتیرشوی واقعات معلوم کړئ چه تیرشوی امتونه چه ستاسونه دزیات طاقت والا وواوستاسونه ورسره زیات مال اودولت وو ، ستاسونه زیات دقبیلې اوخامنواونمسووالا وو. تاسودهغوی لسمې حصې ته هم نه ئې رسیدلې،هغوی ستاسونه دزیات عمروالا وو،ستاسونه زیاتې ابادئ هغوی کړې وې،ستاسونه زیات پټی اوباغونه د هغوی وو،ددې باوجودچه کله هغوی ته دخپل وخت نبی راغې هغوی ته ئې دلیلونه اومعجزات اوښودل،اوبیاهم دهغې زمانې بدنصیبودهغهٔ اونه منل اوپه خپلوسوچونوکښې ډوب وو،اوپه بدو کارونو کښې مشغول وو،نواخرالله تعالی عذاب په هغوی باندې نازل شو،هغه وخت هیڅوك نه ووچه دوی ئې بچ کړې وې.یایوعذاب ئې ددوی نه لرې کړې وې.دالله تعالی ذات ددې نه پاك دی،چه هغه په خپلو بندګانوباندې ظلم اوکړی،داعذاب خو د هغوی دخپلوبدوکارونوانجام وو.دالله تعالی ایتونه دوی نه منل،دالله تعالی خبروپورې به ئې توقې کولې،څنګه چه په بل ایت کښې دی چه ددوی دبې ایمانئ په وجه مونږ ددوی زړونه اوددوی نظرونه لره اوګرځول،اودوی موږه خپله سرکشئ کښې حیران

پریښودل .په بل ایت کښې دی چه ددوی کوږوالی دوجې نه الله تعالی ددوی زړونه کاږهٔ کړل.په بل ایت کښې دی چه کهٔ اوس هم مخ اوګرځوی نوپوهه شه چه الله تعالی دوی لره ددوی په بعضوګناهونوباندې دنیولواراده کړې ده.ددې په وجه (السوای) به منسوب وی(اساءوا)مفعول به شی.اوداقول هم دې چه سوآی دلته داسې واقع ده چه بدی ددوی انجام شوه،ځکه چه دوی دالله تعالی ایتونولره نه منونکی اوهغې پورې توقې کونکی وو.نوددې معنی په روسره دالفظ به منصوب وی.(کان)خبر دې وی.امام ابن جریر هم دغه توجیه بیان کړې ده.اوحضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوقتاده رحمه الله نه هم نقل ده.ضحاك هم دغه فرمائی اوظاهرهم دغه دې،ددې نه پس (كَانُوا بِهَا يَسْتَهْزِءُوْنَ ؅) دې.

اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ثُمَّ
خاص الله | شروع کوي | دپیداوښت | بیا | به هم هغه دوباره پیدا کوي دغه پیداوښت| بیا به
هم الله ﷻ مخلوق په اول خل پیدا کوي | بیا په دونم خل به ئې هم پیدا کوي | بیا به

اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ۝ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ
هم هغه ته | واپس کړې شئ تاسو | او په کومه ورځ | چې قائم شي(راشي) | هغه ساعت (قیامت)
هم د هغه طرفته تاسو واپس کیږئ | او په کومه ورځ چې قیامت راشي

يُبْلِسُ الْمُجْرِمُوْنَ۝ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ مِّنْ شُرَكَآئِهِمْ
نوناامید به حیران پاتې شي | مجرمان خلق | اونۀ به وي | دپاره دهغوئ |دشریکانو دهغوئ نه
نو مجرمان به ناامیده شي | او د دوئ په جوړ کړو شریکانو کښې به هیڅوک سفارشي پیدا

شُفَعٰٓؤُا وَكَانُوْا بِشُرَكَآئِهِمْ كٰفِرِيْنَ۝ وَيَوْمَ تَقُوْمُ
سفارشیان|اووئ به هغوئ |دشریکانو خپلو نه | منکر | اوپه کومه ورځ |چې قائیم شي (راشي)
نشي | اودوئ به دخپلو شریکانو نه (په خپله) منکر شي | او په کومه ورځ چې قیامت راشي

السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ۝ فَاَمَّا الَّذِيْنَ
قیامت | هم په دغه ورځ به | په جداجدا ډلو کښې تقسیم شي دا خلق|پس هر چې دي هغه کسان
نو په هغه ورځ به دا خلق جدا جدا (ټولي) شي | ......................نوچا چې ایمان

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَهُمْ فِيْ رَوْضَةٍ
چې ایمان ئې راوړې دې | او عملونه ئې کړې دي | نیک | پس هغوئ به| په یو باغ کښې
راوړې وي | او ښه کارونه ئې کړي ووا | نو هغوئ بۀ (دجنت) په باغ کښې

يُّحْبَرُوْنَ۝ وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا
خوشحاله ساتلې کیږي | او هر چې دي هغه کسان | چې کفر ئې کړې دي | او دروغ ئې ګڼړلي دي
خوشحاله وي | ......................اوچا چې کفر(غوره) کړې ووا | او زمونږ ایتونه اوداخرت راتلل ئې

بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآئِ الْاٰخِرَةِ فَاُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ۝
ایتونه زمونږ| او ملاقات داخرت | پس دا کسان به | په عذاب کښې | حاضر ساتلې کیږي
دروغ ګڼړلي ووا | نو هغوئ به په عذاب کښې (ګرفتار) حاضرولې شي

فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ
پس تسبیح وایئ دالله | په هغه وخت کښې | چې داخلیږئ تاسو په شپه کښې | او په هغه وخت کښې
نو تاسو دماښام او سحر په وختونو کښې دالله ﷻ پاکي بیانوئ

تُصْبِحُوْنَ۝ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ
چې داخلیږئ تاسو په صبا کښې | او هغه لره | ثناده | په آسمانونو کښې | او په زمکه کښې
......................اوپه اسمانونو اوپه زمکه کښې هم دهغه تعریف دي

| | | |
|---|---|---|
| وَعَشِيًّا | وَّحِيْنَ | تُظْهِرُوْنَ۝ |
| او (تسبیح وایئ) په اخر دورخ کښې | او په هغه وخت کښې | چې داخلیږئ تاسو په ماسپخین کښې |
| او دهغه تسبیح کوئی | او دورځې په آخرې وخت کښې | او د ماسپخین |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يُخْرِجُ | الْحَيَّ | مِنَ الْمَيِّتِ | وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ | مِنَ الْحَيِّ | وَيُحْيِ | |
| رااوباسي هغه | ژوندي | دمړنه | او رااوباسي هغه مړ | دژوندي نه | او ژوندئ کوی | |
| هغه دمړی نه ژوندي راوباسي | | | او دژوندی نه مړي | | او زمکه د مړه کيدو | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْأَرْضَ | بَعْدَ | مَوْتِهَا | وَكَذٰلِكَ | تُخْرَجُوْنَ۝ |
| زمکه | روستو | دمرګ دهغې نه | او همدارنګې | تاسو به ایستلې کیږئ |
| نه پس بیا راژوندئ کوی | | | او دغه شان به تاسوهم راوویستلې شئ | |

**قوله تعالى:: اَللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ**

مبداء د مخلوقاتو او معادو دواړه یو شان دی:۔ دالله تعالی فرمان دې چه دټولومخکښې مخلوقات هم دغې الله تعالی پیداکړی دی.اوځرنګه چه هغه ددې په پیداکولوباندې هغه وخت قادروو،نواوس د فنا کیدونه پس په پیداکولوباندې هم دغه شان بلکه ددې نه زیات قادردې.تاسوټول دقیامت په ورځ دهغهٔ په وړاندې پیش کیدونکی نې،هلته به هغه هریوته دخپلواعمالوبدله ورکړی.دقیامت په ورځ به ګناهګاران ناامیده،رسوا اوخاموش شی.دالله تعالی نه علاوه چه په دنیاکښې نې دچاچاعبادت کولوپه دغوی کښې یوهم به ددوی دسفارش دپاره اونه دریږی.اوهرکله چه دوی دهغوی پوره پوره محتاجه وی دغوی به ترې بالکل مخونه اوګرخوی.اوپه خپله ددوی باطل معبودان به هم ددوی نه بیزاره شی اودوی ته به صفاصفاووائی چه په مونږ اودوی کښې هیڅ تعلق نشته.

**دقیامت په ورځې به داعمالومطابق فیصلې وی** ::دقیامت دقائمیدوسره به داسې جدا جدا شی چه دهغې نه پس ملاویدل هډوشته نهٔ.نیک خلق خوبه (**علیین**)ته اورسولې شی،اوبدخلق به (**سجین**)کښې داخل کړې شی.دغوی به دټولونه په اعلی اوچتوالی کښې وی،اودوی به دټولونه زیات په پستئ کښې وی.بیاددې ابت تفصیل بیانیږی چه نیک نفسونه خوبه په جنت خوشحاله وی اوکافران به په دوزخ کښې سوزیږی.

**دهرقدرت مالک الله تعالی دې**:۔ددې رب تبارک وتعالی په کمال قدرت باندې اوعظمت اوسلطنت باندې دلالت دهغهٔ تسبیح اودهغهٔ حمددې.دکوم طرف نه چه الله تعالی دخپلو بندګانو رهبری کوی. اوخپل پاك کیدل اوقابل دحمدکیدل بیانوی.دمابنام په وخت کښې هرکله چه شپه دخپل خان سره تیاري راوړی.اودسحرپه وخت کښې هرکله چه سحردخپل خان سره رڼاګانې راوړی،ددومره بیانولونه پس واله جمله بیانولونه مخکښې نې داظاهره کړه چه په زمکه اواسمان کښې دحمداو ثناء قابل هم هغه دې.ددوی پیدائش په خپله باندې دهغهٔ په بزرګئ باندې دلیل دې.بیادسحراومابنام په وخت کښې دتسبیح بیان چه مخکښې تیرشوې وو،دهغې سره نې دماسخوتن اوماسپخین وخت یوځائې کړو،چه دپوره تیارې اوکاملې رڼاوخت وی.بیشکه ټوله پاکی دهغهٔ دپاره ده.اوځوك چه دشپې تیارولره اوورځې رڼاګانولره پیداکونکې دې،دسحردظاهرولووالا اوشپې لره دسکون نه ډکه جوړولو والا دې.ددې په شان نورهم ډیرایتونه دی.﴿ وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا۝ وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰهَا۝ ﴾ او ﴿ وَالَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى۝ وَالنَّهَارِ اِذَا تَجَلّٰى۝ ﴾ او ﴿ وَالضُّحٰى۝ وَالَّيْلِ اِذَا سَجٰى۝ ﴾ وغیره.

**قوله تعالى:: فَسُبۡحٰنَ اللّٰهِ**

**د الله تعالى د تسبيح او د كامل قدرت بيان::** دمسند احمد په حديث كښې دى چه حضوراكرم ﷺ اوفرمائيل، تاسوته اووائيم چه الله تعالى دحضرت ابراهيم ؈ نوم خليل اووفادارولې كيښودې وو؟ ځكه چه هغه به په سحراومابښام كښې دا كلمات وئيل،بيا حضور ﷺ (فسبحان الله) نه (تظهرون) پورې دواړه ايتونه تلاوت اوفرمائيل.دطبراني په حديث كښې ددې دواړوايتونوپه حقله دى چه چادسحراومابښام په وخت كښې دادواړه ايتونه اووئيل هغه دشپې اوورځې په وخت كښې دهغه نه چه څه قضاشوي ووبيامونده.بيانې بيان اوفرمائيلو،چه دمرګ اوژوند خالق ،دمړې نه ژوندې پيدا كول،اودژوندونه مړې راويستلوالا هم هغه دې.په هرڅيزاودهغې په ضدباندې هغه قادردې.ددانې نه اونه،داونې نه دانه، د چرګې نه هګئى،اود. هګئى نه چرګه،دنطفې نه انسان،اودانسان نه نطفه ،د مومن نه كافر،اود كافرنه مومن،غرض په هرڅيزباندې اودهغې په ضدباندې هغه ته مكمل قدرت حاصل دې.اوچه زمكې نه هم هغه ترى (لوندوالې)وركوى.دشاړې زمكې نه هم ښنه فصلونه زرغونوى .څنګه چه ئې په سوره ياسين كښې اوفرمائيل چه داوچې زمكې تروتازه كيدل اوبيادهغې نه قسماقسم ميوه جات پيداكول هم زمادقدرت كامل نشان دې.په بل ايت كښې دى چه تاسوورته ګورئ چه هغه زمكه چه دوړې ترې اوچتيږى هغه په اوبوسره لمده كړى اوشينكې په كښې زرغون كړى.اودهرقسمه پيداوارسره هغه ښنه كړم.په نوروهم ډيروايتونو كښې ددې په شان مضمون چرته په تفصيل سره اوچرته مجمل بيان اوفرمائيلو.دلته ئې اوفرمائيل چه هم دغه شان به تاسودمرګ نه پس دقبرونونه به بيا ژوندى كړې شئ اواوبه درولې شئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنۡ اٰيٰتِهٖۤ | | | | | |
| اودنښو دهغه نه(يوه داده) | | | | | |
| اودهغه بله ښنه دا وى | چې | | | | |
| اَنۡ خَلَقَكُمۡ | مِّنۡ تُرَابٍ | ثُمَّ | اِذَاۤ اَنۡتُمۡ | بَشَرٌ | تَنۡتَشِرُوۡنَ﴿۲۰﴾ |
| چې پيدائې كړئ تاسو | دخاورې نه | بيا | دادې تاسو | يو بشر يئ | چې رورو خوريږئ(په زمكه كښې) |
| تاسو ئې د ښاورې نه پيدا كړئ | نو په لږو ورځو كښې (سم دم) سړى شوئ | چې خواره واره ګرځئ | | | |
| وَمِنۡ اٰيٰتِهٖۤ | اَنۡ خَلَقَ | لَكُمۡ | مِّنۡ اَنۡفُسِكُمۡ | | |
| او دنښو دهغه نه (يوه داده) | چې پيدا كړې هغه | ستاسو دپاره | دنفسونو (يعني جنس) ستاسو نه | | |
| اودهغه په ښنو كښې يوه داده | چې تاسو له ئې ستاسو دخپل جنس نه جوړې راپيدا كړې دى | | | | |
| اَزۡوَاجًا | لِّتَسۡكُنُوۡۤا | اِلَيۡهَا | وَجَعَلَ | بَيۡنَكُمۡ | |
| ښحې | دپاره ددې چې تاسو سكون حاصل كړئ | دهغې سره | او پيدا ئې كړو | په منځ ستاسو كښې | |
| چې ارام ورسره بيامومئ | اوستاسو د (ښځې خاوند) په مينځ كښې ئې مينه اوهمدردى | | | | |
| مَّوَدَّةً وَّرَحۡمَةً ؕ | اِنَّ فِىۡ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّقَوۡمٍ | يَّتَفَكَّرُوۡنَ﴿۲۱﴾ | |
| مينه | او رحمت | بيشكه په دې كښې | خامخا ښنې دى | دپاره د هغه قوم | چې غور فكر كوى |
| پيدا كړه | په دې كښې د هغه خلقو دپاره نخښې پرتې دى | چې د فكر نه كار اخلى | | | |

**قوله تعالی:: وَمِنْ اٰیٰتِهٖۤ اَنْ خَلَقَكُمْ**

**په توحیدباندې نفسي دلائل:-** فرمائي چه دالله تعالی دقدرت دبې شمیره نشاناتونه یوه نشانه داهم ده چه هغهٔ ستاسوپلارحضرت ادم ﷺ دخاورې نه پیداکړو،تاسوټول ئې دهغهٔ بې قیمته اوبودڅاڅکي نه پیدا کړئ.بیائې ستاسوډیرښکلي صورتونه جوړکړل. دنطفې نه دتینګې وینې په شکل،بیادغوښې د ټوکړې په صورت اوبیائې درله هډوکي پیداکړل.اوهډوکوته ئې غوه ښه واغوستله،بیادرکښې روح واچولو، سترګې،پوزه،اوغوږونه درله ئې پیداکړل.دمورد خیټې نه ئې په سلامتیا سره پیدا کړې. بیا کمزوري ئې درله په طاقت کښې بدله کړه.ورځ په ورځ طاقتوراومضبوط قدوالا او زورئې درکړو.عمر ئې درکړو،د حرکت اوسکون طاقت ئې درکړو،اواسباب اوالات ئې درکړل،اودټولو مخلوقاتو سردارئې جوړ کړئ،داخوادیخواتګ دپاره ئې دتلواسباب درکړل،دسمندرونو اواوچې مختلف قسمه سورلئ ئې درکړې. عقل،علم،سوچ پوهه،تدبر،غوردپاره ئې زړهٔ اودماغ درکړل،اوددنیاپه کارونوئې پوهه کړئ. رزق اوعزت حاصلولوطریقې ئې درته اوښودلې،اوورسره ئې داخرت دښکلي کولودپاره علم اوعمل درته اوښودلو.پاك دې هغه الله تعالی چه دهرڅیزصحیح اندازه لګوی،اوهریوپه یوه مرتبه باندې ساتی. په شکل اوصورت کښې،په خبرواترو کښې، مالدارئ فقیرئ کښې،عقل اوهنرکښې،ښه والي بدوالی کښې،سعادت اوشقاوت کښې،هریوئې جداکړو،چه هرکس دالله تعالی ډیرنشانات په خپل ځان کښې اوپه نوروکښې اووینی.

**ادم ﷺ دټولې زمکې د نچوړنه پیدا دې::** دمسندامام احمدپه حدیث کښې دی چه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل، الله تعالی دټولې زمکې نه یو موټې خاوره واخسته اودهغې نه ئې حضرت ادم ﷺ پیداکړو. پس دزمکې د مختلفوحصوپه شان دادم ﷺ داولادمختلف رنګونه شو.څوك سپین،څوك سور،څوك تور، څوك خبیث، څوك طیب،څوك خوش اخلاق،څوك بداخلاق،وغیره،بیافرمائی چه دالله تعالی د قدرت یونخښه داهم ده چه هغهٔ ستاسودجنس نه ستاسوجوړې جوړې کړي،چه هغوی ستاسوښځې جوړیږی. اوتاسودهغوی خاوندان ئې،ځکه چه دهغوی نه تاسوته سکون اوارام اوراحت اسائش حاصل وی. ځنګه چه په بل ایت کښې دی چه الله تعالی تاسودیونفس نه پیداکړئ اوهم دهغهٔ نه ئې ښځه پیداکړه،چه هغه دهغې نه راحت حاصل کړی.حضرت حواﷺ دحضرت ادمﷺ دکسې پوختئ نه چه دټولونه وره ده پیداشوې ده،پس کهٔ دانسان جوړه دانسان سره نه ملاویده اودبل څه جنس سره ددهٔ جوړه جوړیده نوموجوده مینه محبت به پکښې نه وو،دامینه محبت دیوجنس دوجې نه دې.دوی په خپل مینځ کښې ئې مینه محبت اورحمت الفت،رحم مهربانی واچوله،پس سړې یاخودمحبت دوجې نه دښځې خیال ساتی یارحم پرې کوی اودهغې خیال ساتی.ځکه چه دهغې نه ئې اولادشوی وی.دهغوی پرورش دداروپه میل ملاپ باندې موقوف دې.عرض داچه ډیروجوهات الله تعالی کیښودې دی چه دهغې په وجه انسان په ارام سره دخپلې جوړې سره خپل ژوندتیروی.داالله تعالی مهربانی اودهغهٔ دقدرت کاملې یوه زبردسته نشانی ده،په لږ شان غورسره هم دانسان ذهن دې ته رسیدې شي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنْ اٰیٰتِهٖ | خَلْقُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَاخْتِلَافُ | |
| او دنښو دهغه نه (یوه ښښه) | پیدائش | داسمانونو | او دزمکې دې | او اختلاف دې | |
| اود هغه په نښو کښې داسمانونو اودزمکې پیداکول هم دی \| او ستاسو د ژبو | | | | | |
| اَلْسِنَتِكُمْ | وَاَلْوَانِكُمْ | اِنَّ | فِیْ ذٰلِكَ | لَاٰیٰتٍ | |
| د ژبو ستاسو | اودرنګو ستاسو | بیشکه | په دې کښې | خامخا ډیرې نښې دی | |
| او رنګونو جدا جدا کول دی بیشکه په دې کښې دپوهانو خلقو دپاره نخښې (اودلیلونه) دی | | | | | |

لِلْعٰلِمِيْنَ۝ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ

دپاره دپوهانو | او دنښو دهغه نه (يوه نښه) | خوب ستاسو دي | په شپه کښي | او په ورځ کښي |

او د هغه په نخښو کښي دا هم ده چې د شپې اوورځي ستاسو اوده کيدل دي |

وَابْتِغَاۗؤُكُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

او تلاش کول ستاسو دی | دفضل دهغه نه | بيشکه په دې کښي | خامخا ډيري نښې دی |

او د هغه د فضل نه روزی تلاش کول دی | بيشکه چې په دې کښې هغه خلقو دپاره نښې دی | چې

لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ۝

دپاره دهغه قوم | چې خبره اوری |

(په غور) خبري واورئی |

**قوله تعالى: وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**

رب العالمين دخپل زبردست قدرت يوه بله نښاني بيان فرمائي چه ددومره اوچت اوکشاده اسمان پيدائش، په دې کښې دستوروکيښودنه،دهغوی پرق اورڼرا،په هغوی کښې دبعضوحرکت کول، د بعضو په يوځائې باندې ساکن کيدل،زمکه په کلك شکل کښې جوړول،داکثيف جوړول،په دې کښې غرونه ،ميدان،ځنګل،سيندونه، موږې، کانړی،وغيره اودرول.په خپله ستاسوپه ژبواورنګونو کښې اختلاف ساتل،دعربوژبه بله،دتاتاريانو اوکردو او درومیانو اودفرنګيانو، اوتکروريو او د بربرو ،او د حبشو اوهندوانو،اودايرانيانو،اوصقالبه،اودارمينيانو،اوجزريانو، او الله تعالى ته پته ده چه څومره څومره ژبې بنی ادم په زمکه باندې وائي.دانساني ژبوداختلاف سره سره ددوی درنګونواختلاف هم د الله تعالى دشان اظهارکوی.خيال اوکړئ چه په لکونوکسان راجمع شي ديوخاندان، يوقبيلې ،او د يو ملك ژبه وی خونا ممکنه ده چه په هريوکښې څه اختلاف نه وی.حالانکه دبدن داندامونوپه اعتبارسره ښکاره موافقت دې.دټولودوه دوه سترګې،دوه روزې،يوه پوزه،دوه غوږونه،يوتندې،يوه خوله،دوه شونډې،دوه اننګی،وغيره،خوهريويل ده جدادې.څه نه څه هيئت،عادت،خصلت،کلام ،خبرې اترې ، طرز اوادا،به ضروروداسې وی چه په هغې کښې به ديويل نه جداوی.اګرچه هغه به ډيرمعمولی اولږ شان وی، اګرچه په ښانست اوبدصورتئ به ډيرخيزونه يوشان په نظرراځي،خوکه غوراوکړې شي اوهريولره په بل باندې ممتازکولووالا يونه يوصفت به نظر راشي. هرپيژندووالا ددومره لوې طاقت والا مالك پيژندې شي،اوددې صنعت نه صانع پيژندې شي.خوب هم دقدرت يوه نښاني ده،چه په هغې سره ستوماني ختمه شي.راحت اوارام حاصليږی.ددې دپاره قدرت شپه جوړه کړه،دکار او روزګاردپاره ،د دنيا دحاصلولودپاره،دګټې اوروزګار دپاره،دمعاش دلټولو دپاره، الله تعالى ورځ پيداکړه،چه د شپې نه بالکل خلاف ده،په يقين سره داوريدونکو اوپوهيدونکو دپاره په دې څيزونو کښې دقدرت نښانات دی.په طبرانی کښې دحضرت زيدبن ثابت رضی الله عنه نه روايت دې چه دشپې به زمانه خوب تختيدو ،نو ما حضور ﷺ ته ددې کارشکايت اوکړو،حضور ﷺ راته اوفرمائيل چه داد دعاوائيه،(اللهم غارب النجوم وهداب العيون وانت حی قيوم ياحی ياقيوم انم عيني واهدې ليلی)،ماچه کله دا دعااولوستله نودخوب نه راتلو بيماری دالله تعالى په فضل اوکرم سره ختمه شوه.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ

| او دنښو دهغه نه (يوه داده) | چې ښائي تاسو ته هغه | بريښنا

| او د هغه په نخښو کښې يوه داده چې تاسو ته دبريښنا پرق ښائی

خَوْفًا وَّطَمَعًا وَّيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَيُحْيٖ بِهٖ

سره ديري | او دطمعې | او نازلوي هغه | داسمان نه | اوبه | پس ژوندئ كوي | په هغې سره |

(دتندر) ويره هم د ه | او (دباران) اميدونه هم | اوهم هغه ديره نه اوبه راوروي | بيا زمكه د اوچيدو

الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ

زمكه | روستو | دمرګ دهغې نه | بيشكه په دې كښې | خامخا نښې دى | دپاره دهغه قوم |

نه پس راژو ندئ اوتازه كړي | بيشكه په دې كښې د هغه خلقو دپاره نښې دى

يَّعْقِلُوْنَ ﴿٢٤﴾ وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ تَقُوْمَ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ

چې دعقل نه كار اخلئ | او دنښو دهغه نه (يوه داده) | چې ولاړ دې | آسمان | اوزمكه |

چې دعقل نه كار اخلي | اود هغه دنخښو نه يوه داده چې اسمان او زمكه د هغه په حكم

بِاَمْرِهٖ ۭ ثُمَّ اِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً ڰ مِّنَ الْاَرْضِ ڰ اِذَآ اَنْتُمْ

په حكم دهغه سره | بيا چې كله | هغه رابلئ تاسو | په رابللو سره | دزمكې نه | نو يودم به تاسو

په ځاني قائم دى | نو څه وخت چې هغه تاسو دزمكې ددننه نه راوبلي | نوتاسو به ناګهانه

تَخْرُجُوْنَ ﴿٢٥﴾

رااوزئ (دزمكې نه) |

راوځئ |

قوله تعالى:: وَمِنْ اٰيٰتِهٖ يُرِيْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا

**داسماني بجلئ چمک دهمک**:- دالله تعالى په عظمت باندې دلالت كونكي يوه بله نشاني بيانيږي.چه په اسمانونو كښې دهغهٔ په حكم سره پړقيږي.چه دهغې په ليدوسره تاسوكله كله ويريږئ،چه هسې نه دا پړق څوك هلاك كړي.چرته بجلي راپريوځي وغيره.اوكله ستاسواميدپيداشي چه ښه ده اوس به باران اوشي ،اوبهٔ به زياتې شي.ترسالي به شي.وغيره،هم هغه دې چه داسمان نه اوبه راوروي،اوزمكه چه اوچه پرته وي چه په هغې كښې دشينكى هيڅ نوم نشان نه وو،دمړي په شان بيكاره وه داباران هغه ژوندئ كړي اوشينكى په كښې راوټوكيږي اوهرطرف ته شينكې شي.اوقسماقسم پيداوارپه كښې راوټوكيږي.دعقلمندودپاره په دې كښې دالله تعالى دعظمت يوژوندې تصويردې.هغوى ددې نخښې په ليدوسره يقين اوكړي چه دې زمكې لره ژوندې كولووالا الله تعالى دمرګ نه پس بيادنوې سرنه زمونږ په ژوندى كولوباندې قادردې.دهغهٔ يوه نشانى داهم ده،چه زمكه اواسمان دهغهٔ په حكم باندې قائم دې.هغه اسمان لره په زمكه راپريوتوته نه پريږدي،اوهغه زمكه اواسمان ټينګ كړى دى.اوهغه نې دزوال نه بچ ساتلي دى.حضرت عمربن خطاب‌رضی الله عنه به چه كله تاكيدي قسم خوړل غوښتل نوفرمائيل به نې چه په هغه الله تعالى مې دې قسم وي دچاپه حكم چه زمكه اواسمان ټينګ شوى دى .

قوله تعالى:: وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ

بيابه دقيامت په ورځ هغه زمكه اواسمان بدل كړي.مړي به دخپلوقبرونونه راوويستې شى،په خپله الله تعالى به دوى ته اوازاوكړي اودوى به صرف په يواوازباندې ژوندى شى اودخپلوقبرونونه به راوځي،څنګه چه په بل ايت كښې دى چه په كومه ورځ هغه تاسوته اوازاوكړي نوتاسوبه دهغهٔ حمد كوئ

او هغه ته به جواب ورکړئ، اويقين به اوکړئ چه تاسو ډیر کم پاتې وئ، په بل ايت کښې دی ﴿ فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ ۝ فَإِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ ۝﴾ صرف په يوآوازسره به ټول مخلوق دحشرپه ميدان کښې جمع شی، په بل ايت کښې دی ﴿ إِنْ كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ۝﴾ يعنی هغه خو به صرف يوآوازوی چه دهغې په اوريدوسره به ټول په ټوله زمونږ په وړاندې حاضرشی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَهُ | مَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ | | وَالْأَرْضِ ط |
| او هغه لره دی | هغه څوك | چی په آسمانونو کښی دی | | او په زمکه کښی دی |
| اوڅومره خلق چې په آسمانونو اوزمکه کښې موجود دی | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كُلٌّ | لَّهُ | قٰنِتُوْنَ ۝ | وَهُوَ | الَّذِيْ | يَبْدَؤُا | الْخَلْقَ |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كُلٌّ | لَّهُ | قٰنِتُوْنَ ۝ | وَهُوَ | الَّذِيْ | يَبْدَؤُا | الْخَلْقَ |
| ټول | هغه لره | فرمان منونکی دی | او هغه | هغه ذات دې | چی اول شروع کوی | دپيداوښت |
| ټول دهغه تابع دی او الله ﷻ هغه ذات دې چې مخلوق په اول ځل پيدا کوی | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | يُعِيْدُهٗ | وَهُوَ | أَهْوَنُ | عَلَيْهِ ط | وَلَهُ |
| بيا | به ئې هم هغه دوباره پيدا کوی | او دا کار | ډیر آسان دې | په هغه باندې | او هغه لره دې |
| اوبيا به ئې سردوباره هم راپيدا کوی اودا کار ورته زيات آسان دې او په آسمانونو | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمَثَلُ | الْأَعْلٰى | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ ج | وَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ ۝ |
| مثال (صفت) | اوچت | په آسمانونو کښې | او په زمکه کښی | او هغه | غالب | او حکمت والا دې |
| او زمکه کښې د هغه شان ډير اوچت دې او هغه ډير زبردست اودحکمتونو خاوند دې | | | | | | |

**په دويم ځل پيداوښت خوالله تعالى ته ايراسان دې:** فرمائی چه دټولواسمانونواوټولوزمکومخلوق دالله تعالی دې.ټول دهغۀ وينځې غلامان دی.ټول دهغۀ ملکيت دی،ټول دهغۀ په وړاندې عاجزاولاچاره او مجبوره اوبې وسه دی.په يوحديث کښې دی چه په قران کريم کښې چه چرته دقنوت ذکردې،هلته دې نه مراداطاعت اوفرمانبرداری ده،دپيدائش ابتداء هم هغۀ اوکړه اوبه دويم ځل پيدائش به هم هغه کوی، اوبه دويم ځل پيدائش داول ځل په نسبت عادتاً زيات اسان وی،په صحيح بخاری کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائی،دجناب باری تعالی ارشاددې،چه ابن ادم مانه منی،اوهغۀ له داسې نه وو کار،هغه ماته بدوانی اوداهم دهغۀ سره لائق نه وو،دهغۀ نه منل خودادی چه دې وائی چه څنګه زۀ دۀ په اول ځل پيدا کرم هغسې مې به دويم ځل نه شی پيداکولې،حالانکه په دويم ځل پيداکول داول ځل د پيدا کولو په نسبت بالکل اسان وی،دهغۀ ماته بدردونيل دادی چه دې وائی چه دالله تعالی اولاددې،حالانکه احد او صمد يم،دچاچه نه اولاداونه موريلاراونه څوك همسرشته،غرض داچه دواړه پيدائشه دهغه مالك په قدرت کښې دی،نه داکارپه هغۀ باندې ګران دې اونه سخت،داهم کيدې شی (هو) ضميرمرجع (خلق) وی (مثل)نه مراددلته دهغۀ توحيدالوهيت اوتوحيد ربوبيت دې نه چه مثال.څکه دالله تعالی ذات دمثال نه پاك دې،فرمان دې (ليس كمثله شئ)دهغۀ څه بل څه مثال نشته،بعضې اهل ذوق ونيلی دی چه کله د صفا سوتره اوبوپاك صفاحوض ولاړوی اودبادصباهواهغه نه خوزوی نوپه هغې کښې اسمان صفا په نظر راځی،نمرستوری سپوږمۍ پکښې واضح ښکاری،هم دغه شان دبزرګانوزړونه دی چه په هغې کښې هغوی هميشه دالله تعالی عظمت اوجلال وينی،اوغالبه ده چه په چاباندې دچاوس نه وی اونه دهغۀ په مخکښې دچاڅه وس رسی،هرڅيزدهغۀ په ماتحتۍ کښې اودهغۀ په وړاندې لاچاراوعاجزه

اوبې وسه دې،دهغه قدرت،سطوت،سلطنت،هرڅیزباندې خوردې،هغه حکیم دې،په خپلو اقوالو او افعالو کښې،په شریعت کښې،په تقدیرکښې،غرض په هرهرامرکښې.حضرت محمدبن منکدر فرمائی (مثل اعلیٰ) نه مراد (لااله الله) دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ضَرَبَ | لَكُمْ مَّثَلًا | مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ۭ | هَلْ لَّكُمْ | مِّمَّا | |
| بیانوي هغه | تاسو ته يو مثال | دنفسونو ستاسو نه | ایا شته تاسو لره | دهغه غلامانونه | |
| الله ﷻ ستاسو دپاره(دتوحید) یومثال هم ستاسود خانونونه بیان کړې دې \| ایا دکومو | | | | | |
| مَلَكَتْ | اَيْمَانُكُمْ | مِّنْ شُرَكَاۗءَ | فِيْمَا | | |
| چې مالکان شوي وي دهغوئ | ښې لاسونه ستاسو | څه شریکان | په هغه مال کښې | | |
| غلامانو چې تاسو مالکان یئ \| په هغوئ کښې څوک داسې هم شته \| چې په هغه رزق | | | | | |
| رَزَقْنٰكُمْ | فَاَنْتُمْ | فِيْهِ | سَوَاۗءٌ | تَخَافُوْنَهُمْ | |
| چې درکړې دې تاسو له | پس یئ تاسو | په هغه مال کښې | یو برابر | (او) تاسو یریږئ دهغوئ نه | |
| کښې کوم چې مونږ تاسوته درکړې دې \|ستاسو برابر شریک وي\|چې تاسودهغوئ داسې خیال اوساتئ | | | | | |
| كَخِيْفَتِكُمْ | اَنْفُسَكُمْ ۭ | كَذٰلِكَ | نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ | لِقَوْمٍ | |
| پشان دیریدلو ستاسو | دخپل برابر خلقو نه | دارنګې | واضحه بیانوو مونږ ایتونه | دپاره دهغه قوم | |
| لکه چې په خپل مینځ کښې چې دیو بل ساتئ ؟ \| مونږ د عاقلانو خلقودپاره دغسې په وضاحت سره | | | | | |
| يَّعْقِلُوْنَ ۝ | بَلِ اتَّبَعَ | الَّذِيْنَ | ظَلَمُوْٓا | اَهْوَاۗءَهُمْ | |
| چې دعقل نه کار اخلي | بلکه پیروی کوی | هغه کسان | چې ظلم ئې اوکړو | دخواهشاتوخپلو | |
| دلیلونه بیانوو، بلکه داظالمان بې دلیله دخپلو خواهشاتو تابعداری کوی \| | | | | | |
| بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ | فَمَنْ يَّهْدِيْ | مَنْ | اَضَلَّ | اللّٰهُ ۭ | وَمَا لَهُمْ |
| بغیر دعلم نه | پس څوک به لاراوښائی | هغه چاته | چې بې لارې کړې وي | الله | اونشته دپاره دداسې خلقو |
| نوداسې خلق به څوک په سمه لار روان کړی \| کوم چې الله ﷻ ګمراه کړی وی ؟ \| او د هغوئ به | | | | | |
| مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ۝ | | | | | |
| هیڅوک دمددګارانو نه \| | | | | | |
| هیڅوک مددګار نه وی \| | | | | | |

**تاسوپه خپل حق کښې شریک نه برداشت کوئ الله تعالی به ئې ولې برداشت کوی:-** دمکې مشرکانوبه خپل بزرګان درب شریک ګڼړل،خوهغوی ورسره داهم منل چه داټول دالله تعالی غلامان اوماتحت دی.نوهغوی به دحج اوعمرې په موقعه به لبیك سره ونیل چه **(لبیك لاشریك لك الا شریكا هولك تملكه وماملك)** یعنی مونږ ستاپه دربارکښې حاضریو،ستاڅوك شریك نشته،مګرهغه چه په خپله دکوم څیزهغوی مالك نه دی،ټول ستاملکیت دی.یعنی زمونږ دشریکانواودهغوی دملکیت خوتة اصلی مالك ئې،پس دلته هغوی په یومثال سره پوهولې کیږی.چه دوی ئې په خپل نفس کښې بیاموموی او ډیر په ښه طریقې سره غورافکراوکړې شی.نوفرمائی چه په تاسوکښې به څوك هم په دې امرباندې راضی

شي؟چه دهغوی په ټولومالونوکښې دهغوی غلامان ددهٔ برابرشريك وی،اوچه هروخت دهغهٔ سره داوېره وی چه تقسيمولوسره زماجائيداداوملکيت نيمګړې پاتې نه شی.پس څنګه چه داخبره تاسودخان دپاره نه خوښوئ نودالله تعالى دپاره هم مه غواړئ،څنګه چه غلام دمالك برابری نه شي کولي،هم دغه شان دالله تعالى يوبنده دالله تعالى شريك نه شی کيدې.داعجيبه بې انصافي ده چه دخپل خان دپاره دکوم څيزنه نفرت اوکرکه کوئ دالله تعالى دپاره هم هغه خبره ثابتولودپاره کينئ،په خپله په لونړوخفه کيږئ،صرف دومره اورېدوسره چه تاکره لورشوې ده مخونه موتورشی،اودالله تعالى مقربوفرشتوته دالله تعالى لونړه وايئ؛دغه دخپل خان دپاره داخبره هيڅ کله نه خوښوئ چه خپلوغلامانولره دخپل خان سره شريك اوبرابراوګڼړئ خودالله تعالى غلامانولره دالله تعالى شريکان ګڼړئ،څومره زياته بې انصافي ده؟دحضرت ابن عباس ؓ نه روايت دې چه مشرکانوبه کوم لبيك ونيلواوپه هغې کښې دالله تعالى سره دنه شرکت اقرارکولوسره بيادهغهٔ دغلامئ دلاندې نورولره به نې شريکان منل،په دې باندې داايت نازل شواوپه دې کښې بيان دې چه هرکله تاسوخپل غلامان دخان برابرګرخولوباندې شرم محسوسوئ نودالله تعالى غلامانولره دالله تعالى شريکان ولئ ګرخوئ؟داصفاخبره بيانولوسره نې ارشاد اوفرمانيلوچه مونږهم داقسمه تفصيل اودلائل دغافلانوپه وړاندې ږدو،بيافرمائی اوښانې چه د مشرکانو دشرك هيڅ عقلی سنديانقلی دليل نشته صرف دجهالت کرشمه ده اودجهالت دپيروئ خواهش دې.هرکله چه هغوی دنيغې لارې نه بې لارې شوی دی.نودوی لره سوادالله تعالى بل هيڅوك په نيغه لاره نه شی راوستې،دوی اګرچه نورولره خپل کارسازاومددګارګڼړی خوواقعه داده چه درب د دشمنانوهيڅوك دوست نه وی.څوك شته چه دهغهٔ دمرضئ نه علاوه شوندې اوخوزوی؟څوك دې چه په هغهٔ باندې مهربانی اوکړی په چاچه الله تعالى نامهربانه وی؟دهغهٔ خوښه کيږی اوڅه چه نه غواړی هغه نه شی کيدې.

فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا ؕ

| پس برابر کړه | مخ خپل | دين ته | حال دا چی مائل اوسې حق ته
| نوته هميشه ددين (اسلام) تابعدار اوپو مخيزئ اوسيږه

فِطْرَةَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ؕ لَا تَبْدِيْلَ

قائم اوسه په فطرت دالله | هغه | چی پيدا کړی دی الله خلق | په هغې باندې | نشته دې بدليدل
دالله ﷻ فطرت هغه دې په کوم چې ئې ټول خلق پيدا کړی دی | .................. دالله ﷻ پيدا کړی

لِخَلْقِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ۙ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

جوړښت دالله لره | دادين (يعنی طريقه) | صحيح ده | وليکن | اکثر خلق |
څيزونه کښې بدلولون پکارنه دې | .................. نو دغه صحيح دين دې | خو زيات خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ۝۳۰ مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ

دا طريقه نهٔ پيژنی | (ټينګ شئ په دې فطرت) حال دا چې رجوع کونکي يئ | خاص هغه (الله) ته
نه پوهيږی | .................. (اې خلقو) الله ﷻ طرفته رجوع اوکړئ |

وَاتَّقُوْهُ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَلَا تَكُوْنُوْا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝۳۱

اواويريږئ دهغه نه | او قائيم کړئ مونځ | او مهٔ کيږئ | دمشرکانونه |
اودهغه نه اويريږئ او دمونځ پابندی کوئ | .................. اوپه مشرکانو کښې مه شامليږئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ الَّذِيْنَ | فَرَّقُوْا | دِيْنَهُمْ | وَكَانُوْا | شِيَعًا | |
| دهغه کسانونه | چې جدا جدا کړې ئې دي | دين خپل | او تقسيم شوي دى | په ډلو ډلو کښې | |
| کومو خلقو چې خپل دين ټکړې ټکړې کړو | .............. اوډلې ډلې شول | | | | |
| كُلُّ حِزْبٍ | بِمَا | لَدَيْهِمْ | فَرِحُوْنَ ⁂ | | |
| هره ډله | په هغه دين | چې دهغوئ سره دې | خوشحاله دى | | |
| هر يوه ډله هم په هغه څه خوشحاليده څه چې د هغوى سره دى | | | | | |

دفطرت نه څکه مراددې:- په ملت دابراهيم حنيف ټينګ اودريږئ، کوم دين لره چه الله تعالى ستاسو دپاره مقررکړې دې.اوکوم چه اې نبى ﷺ ستاسوپه لاس الله تعالى کمال ته رسولې دې.دالله تعالى په فطرت سليمه باندې هم هغه قائم دې څوك چه ددين اسلام پابندې.هم په دې باندې يعنى په توحيد باندې الله تعالى تمام انسانان جوړکړى دى.په اول ورځ دټولونه دااقراراخستې شوې ووچه ايازۀ ستاسو رب نه يم؟نوټولواقراراوکړوچه بيشکه هم تۀ زمونږ رب تعالى ئې،هغه حديثونه به ډيرزرانشاءالله بيان شى دکومونه چه ثابته ده چه الله تعالى خپل ټول مخلوق په خپل رښتونې دين باندې پيداکړى دى. ګو چه ددې نه پس خلق يهوديت،نصرانيت وغيره ته لاړل،خلقوداالله تعالى دافطرت مۀ بدلوئ،خلق ددې نيغې لارې نه مه بې لارې کوئ،داخوخبرپه معنى کښې دحکم به وى،څنګه چه﴿وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا﴾ کښې ددې معنى ډيره بهترينه اوصحيح ده.دويمه معنى ئې داهم ده چه الله تعالى ټول مخلوقات په فطرت سليمه باندې يعنى په اسلام باندې پيداکړل.دالله تعالى په دې دين کښې هيڅ تغيراوتبدل نشته،امام بخارى ئې هم دغه معنى کړې ده.چه دلته دخلق الله تعالى نه مراددين اوفطرت اسلام دې. په بخارى کښې دحضرت ابوهريره رضی الله عنه په روايت سره دحضور ﷺ فرمان دې چه هرماشوم په فطرت باندې پيدا کيږى. بيادهغۀ مورپلارهغۀ يهودى نصرانى اومجوسى جوړکړى،څنګه چه دبزې صحيح سالم بچې وى اوخلق دهغې غوږونه کټ کړى،بياحضور ﷺ داايت تلاوت اوفرمائيلو﴿ فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۭ لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ﴾ په مسنداحمد کښې دى چه حضرت اسودبن سريع رضی الله عنه فرمائى چه زۀ درسول الله ﷺ خواته راغلم،دحضور ﷺ سره مې دکفاروسره جهاداوکړو،هلته مونږ دالله تعالى په فضل سره کامياب شو،په دغه ورځ خلقوډيرکافران قتل کړل،تردې پورې چه ورو ماشومانوته ئې هم لاس واچولو،حضوراکرم ﷺ ته چه کله پته اولګيده نوحضور ﷺ ډيرزيات خفه شواووې فرمائيل چه داڅه خبره ده چه خلق دحدنه اوځى، نن ئې ماشومان هم قتل کړل،چاورته اووئيل چه يارسول الله ﷺ اخرهغوى خوهم دمشرکانو اولادوو. حضور ﷺ اوفرمائيل نه نه،يادساتئ په تاسوکښې بهترين خلق دمشرکانوبچې دى.خبردارماشومان هيڅ کله مۀ قتلوئ.دنابالغه دقتل کولونه منع شئ، هر ماشوم په فطرت باندې پيداکيږى تردې پورې چه هغه په خپله ژبه څه اووائى بيادهغۀ مورپلارهغۀ يهودى نصرانى جوړکړى.دجابربن عبدالله رضی الله عنه په روايت سره په مسندکښې دى چه حضور ﷺ فرمائى ،هرماشوم په فطرت باندې پيداکيږى.تردې پورې چه هغه ته ژبه راشى اوس هغه ياخوشاکرجوړشى يا کافر.

مسندکښې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه دحضور ﷺ نه دمشرکانواولادپه باره کښې سوال اوکړې شونوحضور ﷺ اوفرمائيل چه کله دوى الله تعالى پيداکړل نوهغۀ ته ښه پته وه چه دوى څه اعمال کونکى دى.ددوى نه مروى دى چه په يوه زمانه کښې به ماوئيل چه دمسلمانانواولاددمسلمانانوسره دې. اودمشرکانودمشرکانوسره.تردې پورې چه فلانى کس دفلانى نه روايت اوکړواوماته ئې واورولو ،چه هرکله دحضور ﷺ نه دمشرکانودماشومانوپه باره سوال اوکړې شونوحضور ﷺ اوفرمائيل الله تعالى ته ښه پته ده دهغۀ څيزچه هغه ئې کوى.

دي حديث اوريدوسره ماخپله فتوى پرينبوده.حضرت عياض بن حمار‌ﷺ په مسند امام احمدؒ وغيره كښي حديث دي.چه حضورﷺ په يوه خطبه كښي اوفرمائيل چه ماته الله تعالى حكم راكړوچه هغه نن څه ماته ښودلى دى اودهغي نه چه تاسو ناخبره يئ هغه زه تاته اوښايم.وې فرمائيل چه څه ما خپلو بندګانوته وركړي دى ماد هغوى دپاره حلال كړل.ماخپل ټول بندګان يك طرفه خالص دين والا جوړكړي دي،ددوى خواته شيطان راغلى اودوى ددين نه ګمراه كوي.اوحلال په دوى حراموي،دوى ته زماسره دشرك دپاره وائي،چه دهغي څه دليل نشته،الله تعالى دزمكي والوطرف ته نظرواچولواوعرب اوعجم ئې ټول ناخوښه كړل.سواديوڅواهل كتاب نه علاوه.هغه فرمائي چه ماتاسوصرف دازميښت دپاره ليږلي ئې،ستاسوخپل ازميښت به هم كيږي اوستاپه وجه دنوروټولوهم.زه به تاسوته هغه كتاب دركړم چه اوبه به ئې نه شي وينځلي،ته به هغه په خوب اوپه ويښه وائې،بياماته الله تعالى ارشاداوفرمائيلوچه زه قريش خبرداركړم ،ماخپله انديښنه ظاهره كړه.چه چرته هغوى زماسرمات نه كړي اودروټئ په شان ئې نه كړي؟نووې فرمائيل چه څنګه دوى تاوباسى دغسى به زه دوى اوباسم،ته ددوى سره جهاداوكړه اوزه به ستادملګرتياكوم.ته خرچ كوه په تاباندې به خرچ اوكړى شى.ته لښكراوليږه زه به دهغې نه پنځه چنده زيات لښكراوليږم.فرمانبرداردځان سره كړه اوپه نافرمانوباندې حمله اوكړه.دجنت والا درې قسمه دى،عادل بادشاه،دخيرتوفيق والا اوسخى،نرم زړه والا دهرمسلمان سره احسان كولووالا پاك دامن، دسوال اوحرامونه بچ كيدونكي،اودبال بچ والا كس،اهل جهنم پنځه قسمه خلق دى.هغه بې حيثته اوكمينه خلق چه بې زره اوبې كوره دى.چه ستاسوپه لمنوكښې خانونه راوينغاري.هغه خيانت كونكى چه په وړو وړوخيزونوكښې هم دخيانت كولونه بغيرنه پاتې كيږي،هغه خلق چه هروخت خلقولره دهغوى په مالونواواهل وعيال كښې دهوكې وركوي،سحرماښام په دهوكه بازئ اومكروفريب كښې لګياوى، بياحضورﷺ دبخيل يادروغ وئيونكى ذكراوكړواووې فرمائيل چه دپنځم قسم خلق بدزبانه او بدګويادى.(مسلم وغيره)

هم دغه فطرت سليمه،هم دې شريعت لره په مضبوطتياسره ټينګ نيول رښتونې اونيغ دين دې. خو اكثرخلق ترې ناخبره دى.اودخپل دې جهالت په وجه دالله تعالى دداسې پاك دين نه لرې بلكه محرومه پاتې شى.څنګه چه په بل ايت كښې دى،ګوستاداحرص وى ليكن په دوى كښې به اكثرخلق بې ايمانه پاتې كيږي.په بل ايت كښې دى چه كه ته داكثريت اطاعت كونكې شې نوهغوى به تادالله تعالى دلارې نه بې لارې كړى.تاسوټول دالله تعالى لارې ته راغب اوسيږئ اوهم دهغه طرف ته ښكته كيږئ،اوهم د هغه ويره ساتئ،دهغه لحاظ ساتئ،دمونځ پابندى كوئ،چه دټولونه لوې عبادت اواطاعت دې. تاسو مشركان مه جوړيږئ،بلكه خالص موحدين جوړشئ،دهغه نه علاوه دبل چانه دخپل مرادطمع مه ساتئ،حضرت معاذﷺ دحضرت عمرﷺ نه ددې ايت دمطلب پوښتنه اوكړه نوهغوى ورته اوفرمائيل دا درې خيزونه دى.اول اخلاص،چه فطرت دې اوپه كوم باندې چه الله تعالى مخلوق پيداكړې دې.دويم مونځ چه په اصل كښې دين دې،دريم عصمت چه په اصل كښې پاكى اوبچاودې.حضرت عمرﷺ اوفرمائيل تاربښتيااووئيل.تالره په مشركانوكښې شاميليدل نه دى پكار،تاله دهغوى ملګرتيانه ده پكار ،اونه دهغوى په شان كاركول پكاردى.چاچه دالله تعالى دين بدل كړو ،بعضې خبرې ئې اومنلې او دبعضونه ئې انكاراوكړو،(فرقوا) دويم قرات(فارقوا) دې.يعنى هغوى خپل دين پرينبودو،لكه څنګه چه يهود،اونصارى،اومجوس،بت پرست،اوباقى باطل مذهبونووالا.څنګه چه ارشاددې،چه كومو خلقو په خپل دين كښې فرق اوكړواوګروه بندى ئې اوكړه.نوته په هغوى كښې نه ئې،دهغوى اخرت دالله تعالى په حواله دې.ستانه مخكښې خلق دلې دلې شواوټول په باطل باندې ټينګ اودريدل ،او هر فرقې به دعوى كوله چه هغه څه دې،اواصلى حقانيت ددوى ټولونه ورك شوې وو.په دې امت كښې هم

تفرقه پیداشوه، خویه دې کښې یویه حق باندې دې، اوباقی ټول گمراه دی. دادحق والا ډله اهل سنت والجماعت ده. چه داللّٰه تعالی کتاب اوسنت رسولﷺ لره په په مضبوطیاسره نیونکی دی په چاچه دمخکینۍ زمانې صحابه، وتابعین، اوامامان مسلمین وو. په تیره زمانه کښې هم اواوس هم، څنګه چه په مستدرك حاکم کښې دی چه درسول اللّٰهﷺ نه تپوس اوکړې شوچه په دوی کښې خلاصې بیاموندونکې فرقه کومه یوه ده؟ حضورﷺ اوفرمائیل (من کان علی ما انا علیه الیوم واصحابی) یعنی هغه خلق چه په دې باندې وی په کوم چه نن زهٔ اوزماصحابه دی (رونړوغورواوکړئ چه په کوم څیزباندې رسول اللّٰهﷺ اودهغهٔ اصحاب رضی اللّٰه عنهم دحضورﷺ په زمانه کښې ووهغه وحی الهی، یعنی قران اوحدیث وو، یادخنې امام تقلید.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | وَإِذَا | مَسَّ |
| | | | | | \| او کله چې \| | اورسیږی \| |
| | | | | | \| ..او څه وخت چې خلقو | |
| النَّاسَ | ضُرٌّ | دَعَوْا | رَبَّهُمْ | | مُّنِيبِينَ | إِلَيْهِ |
| خلقو ته \| | څه تکلیف \| | نو رابلی هغوئ \| | رب خپل \| | | په دا حال کښې چې رجوع کونکی وی \| | هغه ته |
| ته تکلیف اورسیږئ \| ......زنو خپل رب ته زاری شروع کړی \| | | | | | | |
| ثُمَّ إِذَآ | | أَذَاقَهُم | مِّنْهُ | رَحْمَةً | إِذَا | فَرِيقٌ |
| بیا چې کله \| | | اوڅکوی اللّٰه هغوئ ته \| | دطرفه خپل نه \| | (مزه) درحمت \| | نو په هغه ساعت \| | یوه ډله |
| بیا چې کله د خپل رحمت مزه په هغوئ اوڅکوی \| ............. نوپه هغه وخت کښې یوه ډله | | | | | | |
| مِّنْهُم | بِرَبِّهِمْ | يُشْرِكُونَ ﴿٣٣﴾ | | لِيَكْفُرُوا | | بِمَآ |
| دهغوئ نه \| | درب خپل سره \| | شریك پیدا کوی \| | | دپاره ددې چې ناشکری اوکړی \| | | په هغې \| |
| خپل رب دپاره شریکان جوړول شروع کړی \| .............حاصل داچې زمونږ ورکړې شوو نعمتونو | | | | | | |
| ءَاتَيْنَٰهُمْ | | فَتَمَتَّعُوا | | | فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾ | |
| چې ورکړې دې مونږ هغوئ ته \| | | پس فائیده واخلئ (څه لږې ورځې) \| | | | ډیر زر به تاسو ته پته اولږی \| | |
| ناشکری کوی \| نو تاسو (ددنیاوی لذتونونه) فائدې واخلئ \| ډیر زر به تاسو ته انجام معلوم شی | | | | | | |
| أَمْ أَنزَلْنَا | عَلَيْهِمْ | سُلْطَٰنًا | فَهُوَ | يَتَكَلَّمُ | | بِمَا |
| ایا نازل کړې دې مونږ \| | په دوئ باندې \| | څه دلیل \| | چې هغه \| | خبری (شهادت کوی) \| | | په هغې |
| ایا مونږ دې کافرانو ته څه سند رالیږلې دې \| چې هغه ورته ددوی د شرک جواز بیانوی | | | | | | |
| كَانُوا | بِهِۦ | يُشْرِكُونَ ﴿٣٥﴾ | وَإِذَآ | أَذَقْنَا | النَّاسَ | رَحْمَةً |
| چې دی دوئ \| | په هغې سره \| | شرك كونكي \| | او کله چې \| | اوڅکوؤ مونږه \| | خلقو ته \| | رحمت \| |
| ......... او کله چې مونږ دې خلقوته د خپلې مهربانئ لږه ډیره حصه اوښایو | | | | | | |

فَرِحُوا بِهَا ۚ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ

نوخوشحاليږي په هغې | اوكه اورسيږي دوئ ته | څه مصيبت | په سبب دهغې | چې مخكښې ليږلي وي

نو دوئ پرې خوشحاله شي (اوشكر نه كوي) | اوكه دخپل عمل په وجه پرې څه مصيبت راشي

أَيْدِيهِمْ إِذَا هُمْ يَقْنَطُونَ ۝ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ

لاسونو ددوئ | نو په هغه وخت | دوئ | نا اميده كيږي | ايا نهٔ ګوري دوئ | چې بيشكه الله

نو زر نااميده شي (او صبر نه كوي) | ...................ايا دوئ ته معلومه نه ده چې الله ﷻ

يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ ۚ

فراښه كوي | رزق | دپاره دهغه چا | چې خوښه ئې شي | او تنګوي (رزق چې اوغواړي)

دچا چې اوغواړي | نو چا ته روزي فراخه كړي | اوچاته چې اوغواړي نو تنګه كړي

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ۝ فَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ

بيشكه په دې كښې | خامخا ډيرې نښې دي | دپاره دهغه قوم | چې ايمان راوړي | پس وركړه

بيشكه په دې كښې دايماندارو خلقو دپاره ډيرې نښې دي | نو تاسو خپلو رشته دارو

حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ

| خاوند دخپلولئ له | حق دهغه | او مسكين له | او مسافر له | دا (طريقه) | بهتره ده

ته مسكينانو اومسافرو ته د هغوئ حق وركوئ | ..............داخبره دهغه خلقو دپاره

لِلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ

دپاره دهغه كسانو | چې غواړي | رضا دالله | او دا خلق چې دي | خاص هم دوئ

ډيره غوره دد | چې دالله ﷻ رضا غواړي | ............او همدا خلق كاميابي موندونكي دي

الْمُفْلِحُونَ ۝ وَمَا آتَيْتُمْ مِنْ رِبًا لِيَرْبُوَ

فلاح (يعني خلاصي)موندونكي دي | اوهغه چې وركوئ تاسو | دسود نه | دپاره ددې چې زيات شي

........................................اوتاسو خلق چې (كوم رقم) په سود وركوئ | چې دخلقو

فِي أَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُو عِنْدَ اللَّهِ ۖ وَمَا آتَيْتُمْ

په مالونو دخلقو كښې | پس نهٔ زياتيږي (هغه) | په نز دالله | او هغه چې وركوئ تاسو

په مال كښې ملاؤ شي نوزيات شي | نوداسې خيزد الله په نيز نه زياتيږي (بلكه بې بركته وي) | اوتاسوچې د الله

مِنْ زَكَاةٍ تُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُونَ ۝

دزكات نه | چې غواړئ تاسو | رضا دالله | نو دا خلق چې دي | هم دوئ | زياتونكي دي دمال |

د رضا دپاره كوم زكاة وركوئ | نو داسې خلق (خپل مالونه) دالله ﷻ سره (په څو څو چنده) زياتوي

اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ

الله هغه ذات دي | چې پيدا ئې كړئ تاسو | بيا ئې روزي دركړه تاسو له | بيا | هم هغه مړه كوي تاسو

الله ﷻ هغه ذات دي چې تاسو ئې پيدا كړئ | بيا ئې روزي دركړه | بيا بهٔ درباندې مرګ راولي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ط | هَلْ مِنْ شُرَكَائِكُمْ | مَّنْ | يَّفْعَلُ | |
| بيا به هم هغه ژوندي کوي تاسو | آيا شته دشريکانو ستاسو نه | هغه څوك | چي کوي | |
| بيا به مو ژوندي کړي | آيا ستاسو په شريکانو کښې څوك داسې شته | چې په دې کارونو کښې يوهم | | |
| مِنْ ذٰلِكُمْ | مِّنْ شَيْءٍ ط | سُبْحٰنَهٗ | وَتَعٰلٰى | عَمَّا |
| ددې کارونو نه | پو څيز (کار) | پاك دې هغه | اواوچت دې | دهغه کارونو نه |
| اوکړې شي ؟ ............ د الله ﷻ دپاره پاکي ده | او ددوئ دپيدا کړو شريکانو نه ډير | | | |
| يُشْرِكُوْنَ ع | | | | |
| چې دوئ ئې شريك کوي | | | | |
| اوچت دې | | | | |

**قوله تعالى:: وَاِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُّنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ**

**دانسان عجيبه حالت دې::**-الله تعالى دخلقوحالت بيان فرمائي چه په غم درد ،مصيبت اوتکليف په وخت خوهغوي الله تعالى(وحده لا شريك له) ډيره عاجزئ،زارئ،اوډيره توجه اوپوره دلسوزئ سره يادوي .او کله چه په دوي نعمتونه راوريږي نودوي دالله تعالى سره شرك کوي.(ليکفروا)کښې لام بعضې خوواني چه دالام عاقبت دې.اوبعضې وائي چه دالام تعليل دې.خوددې لام تعليل کيدل ددې وجې نه ښه معلوميږي چه الله تعالى ددوي دپاره دامقررکړل اوبيائې دوي ته دهمکې ورکړه چه تاسوته به اوس پته اولگي .دبعضې بزرگانوفرمان دې چه کوتوال ياسپاهي که څوك اويروي نوهغه اوريږي. دحيرانتيا خبره ده چه دهغهٔ په ويرولوسره مونږ نه ويريږودچاپه قبضه کښې چه هرڅيزدې.اودهغهٔ صرف داونيل دهرکاردپاره کافي دې چه اوشه.بيادمشرکانوبې دليله کيدل بيان فرمائيلې شي چه مونږ په دوي باندې دشرك دليل نه دې نازل کړې،بيادانسان يوبيهوده خصلت بطورانکاربيانيږي صرف ديو څو هستيانو نه علاوه عمومي حالت دادې چه دخوشحالۍپه وخت په غرورکښې راشي اودسختئ په وخت کښې مايوس شي.گوياواوس هيڅ بهتري ملاويدووالا نه ده.اومومن په سختوباندې صبراوپه نرمئ باندې نيکئ کوي.

**دمؤمن په حالت هم حيرانتيا ده::** په صحيح حديث کښې دي چه په مومن باندې حيرانتياده،څکه چه د الله تعالى هره قضادهٔ دپاره بهتروي،په راحت شکرکوي،نوداهم ددهٔ دپاره بهتره وي.اوپه مصيبت باندې صبر کوي ،نوداهم ددهٔ دپاره بهتره وي.هم الله تعالى متصرف اومالك دې.اودخپل حکمت مطابق ئې دا جهان جوړکړې دې،چاته کم ورکوي اوچاته زيات ورکوي.څوك په تنگسيااوتکليف کښې دې اوڅوك په راحت اووسعت کښې،په دې کښې دمومنانودپاره نخښې دی.

**قوله تعالى:: فَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ط**

**قرابت دارو وغيره سره دصله رحمئ اوحسن سلوك حکم::**-قرابت داروسره دنيکئ ،سلوك،اوصله رحمئ حکم کيږي.مسکين هغهٔ ته وائي دچاسره چه څه هم نه وي.ياڅه وي ولې کافي نه وي.دهغهٔ سره هم د ښه سلوك او احسان حکم کيږي.مسافردچاسره چه خرچه کمه شوي وي اودسفرخرچه ورسره نه وي دهغهٔ سره هم دښيگړې حکم کيږي.دادهغوي دپاره بهتره ده چه غواړي چه دقيامت په ورځ ديدارالهي اوکړي په حقيقت کښې دانسان دپاره ددې نه بل لوې نعمت نشته،په دنيااواخرت کښې به خلاصې هم دغه قسمه خلقوته ملاويږي.

**قوله تعالى:: وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ رِّبًا لِّيَرْبُوَا فِيْٓ اَمْوَالِ النَّاسِ**

**ددې مطلب او تفسير:** ددې دويم ايت تفسيرخودابن عباس، مجاهد، ضحاك، قتاده، محمد بن كعب اوشعبي رح نه داسې مروى دې چه كوم كس څه عطيه په داسې ارادې سره وركړى چه خلق دا نه ددې نه زياته وركړى نواګرچه په دې ارادې سره داهديه وركول خومباح دى خودثواب نه خالى ده.دالله تعالى په نزدددې هيڅ بدله نشته،مګرالله تعالى خپل نبي ددې نه هم منع كړو.په دې معنى كښې به داحكم صرف دحضور دپاره خاص وى.ددې په شان ايت ولاتمنن تستكثر دې.يعنى د زياتې بدلې په نيت دچاسره احسان مه كوه.دحضرت ابن عباس نه روايت دې چه دسوديعنى نفع دوه صورتونه دى.يويه بيوپارتجارت،بيعه كښې خوحرام محض دى.دويم سوديعنى زيات والې چه په هغې كښې څه نقصان نشته هغه په دې ارادې سره چاته هديه تحفه وركول دى چه هغه ماته ددې نه زيات راكړى.بياحضور داايت تلاوت اوفرمائيلوچه دالله تعالى سره خوثواب دزكوة داداكولودې.زكوة وركونكوته ډيربركتونه ملاويږى.

**قوله تعالى:: وَمَآ اٰتَيْتُمْ مِّنْ زَكٰوةٍ**

**د زكوة او صدقې دوچند ثواب::** په صحيح حديث كښې دى چه كوم كس يوه كهجوره صدقه هم وركړى خوچه په حلال طريقې سره ئې حاصله كړې وى نوهغه الله تعالى رحمان اورحيم په خپل ښى لاس كښې واخلى اوهغه داسې پالى اوزياتوى ئې لكه څنګه چه په تاسو كښې يوكس داوښ يادأس د بچى پرورش كوى. تردې پورې چه هغه يوه كهجوره داحددغرهومره لويه شى.هم الله تعالى خالق اورازق دې .انسان دخپلې موردخيتې نه برېنډ،بې علمه،بې ستركو،بې غوږواوكمزورې راوځى،بياالله تعالى هغه ته دا هر څه وركړى.مال هم،ملكيت هم،كته هم،تجارت هم،غرض بې شميره نعمتونه ورته وركړى .د دوواصحابوبيان دې چه مونږ دحضور په خدمت كښې حاضرشو،دغه وخت كښې حضور په څه كاركښې مشغول وو.مونږ دحضور په هغه كاركښې مدداوكړو،حضور اوفرمائيل چه كه سرونه خوزيدل نوبياهم څوك دروزئ نه محرومه نه پاتې كيږى.

**قوله تعالى:: اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ**

انسان برېنډاوورې دنياته راځى،يوپوټكي هم د هغه په بدن باندې نه وى بيارب تعالى هغه له روزئ وركوى،هغه به ددې ژوندنه پس بياتاسووژنى بيا به موډقيامت په ورځ ژوندى كړى.دالله تعالى نه علاوه چه تاسودچاچاعبادت كوئ په هغوى كښې يوهم په دې خبروكښې په يوه هم هيڅ قابونه لرى.په دې كارونوكښې يوكارهم هغه نه شى كولې.الله سبحانه وتعالى يواځې خالق،رازق او دمرګ ژوندمالك دې.هم هغه به دقيامت په ورځ ټول مخلوقات ژوندى كړى.هغه مقدس پاك اوعزت اودجلال والا ذات ددې نه پاك دې چه څوك دهغه سره شريك وى. يا د هغه په شان وى يادهغه برابروى يادهغه اولادوى ياموريلاروى.هغه احددې صمددې،يواځې دې د مور پلاراولادنه پاك دې.دهغه هيڅوك همسر يا برابرنشته.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ظَهَرَ الْفَسَادُ | فِي الْبَرِّ | وَالْبَحْرِ | بِمَا |
| ظاهر شو فساد | په اوچه كښې | او په درياب كښې | په سبب دهغې |
| | | | په اوچه لونده (هرځائې) كښې دخلقو (دبدو) عملونو په وجه فساد |
| كَسَبَتْ | اَيْدِي النَّاسِ | لِيُذِيْقَهُمْ | بَعْضَ الَّذِيْ |
| چې ګټلې دى | لاسونو دخلقو | دپاره ددې چې اوڅكوى هغوئ ته | مزه دخينو هغو عملونو |
| | | | خورشوي دي چې الله دوئ ته د بعضې عملونو (دسزا) خوند |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَمِلُوْا | لَعَلَّهُمْ | يَرْجِعُوْنَ﴿٤١﴾ | قُلْ | سِيْرُوْا |
| چې کړې دی هغوئ | دپاره ددې چې هغوئ | واپس راشي | ورته اووایه | چې اوګرزئ |

اوځکوی | ددې دپاره چې دوئ منع شی | ...................، (ائې پیغمبره، ورته اووایه چې په ټوله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِي الْأَرْضِ | فَانْظُرُوْا | كَيْفَ | كَانَ | عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلُ ؕ | |
| په زمکه کښې | پس اوګورئ | څرنګې | وو | انجام | دهغه کسانو | چې مخکښې وو ددوئ نه |

زمکه اوګرځئ | نو اوګورئ چې ستاسو نه دپخوانو خلقو انجام څه شو ؟

| | | |
|---|---|---|
| كَانَ | أَكْثَرُهُمْ | مُّشْرِكِيْنَ﴿٤٢﴾ |
| وو | زيات دهغوئ | مشرکان |

په هغوئ کښې زيات خلق مشرکان وو |

**قوله تعالى:: ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ**

**دانسان دګناه هونتيجه اوبراوبحر مطلب:**-ممکن ده دبريعنی خشکئ نه مرادميدان ځنګل وی، او بحر يعنی ترئ نه مراد ښاراوکلی وی.ګنې ظاهره ده چه برخشکئ ته وائی اوبحراوبوته وائی.دخشکئ د فسادنه مراددباران نه کيدل،دپيداوارنه کيدل،اوقحط سالئ راتلل دی.دترئ دفسادنه مراد دبارانونو اودريدل چه دهغې سره داوبوځناورراندهٔ شی.دانسان وژل اوکشتئ په زوراوجبرسره اخستل ،داد خشکئ فساددې.دبحرنه مرادجزيرې اودبرنه مرادښارونه اوکلی دی.ليکن اولنې قول زيات ظاهردې او ددې تائيدمحمدبن اسحاق ددې روايت نه هم کيږی چه حضوراکرم ﷺ دايله بادشاه سره صلح اوکړه، او دهغهٔ بحريعنی ښارئې دهغهٔ په نامه کړی.دميوواوسبزونقصان په اصل کښې دانسان دګناهونوپه وجه سره دې،

**ګناهونو سره دزمکې فساد او اطاعت سره اصلاح کيږی::** دالله تعالی نافرمانه زمکې لره ورانونکی دی.داسمان اوزمکې اصلاح دالله تعالی په عبادت اواطاعت کښې ده.په ابوداودکښې حديث کښې دې چه په زمکه باندې يوحدقائميدل دزمکې والوپه حق کښې دڅلويښتو ورځودباران نه بهتردې.داځکه چه دحدپه قائميدوسره به مجرم دګناهونونه منع شی اوکله چه ګناه نه کيږی نوخلقوته به اسمانی اوزمکی برکتونه حاصل وی ،نوپه اخره زمانه کښې هرکله چه حضرت عيسی بن مريم ؑ راکوزشی اودپاک شريعت مطابق فيصلې به کوی مثلاً دخنزيرقتل،دصليب ماتې،دجزيې ترک يعنی داسلام قبوليت ياجنګ،بياکله دهغوی ؑ په زمانه کښې دجال اودهغهٔ مريدان قتل شی ياجوج اوماجوج تباه شی نوزمکې ته به اووئيلې شی چه خپل برکتونه واپس کړه.نوپه دغه ورځ به يواناردډيروخلقودپاره کافی شی دومره لوی به وی چه دهغې دپوستکی لاندې به ډيرخلق سيورې حاصلوی.ديوې اوښې پئ به دټولې قبيلې دپاره کافی وی.داټول برکتونه به درسول الله ﷺ د شريعت دجاری کولوپه وجه سره وی.ځنګه ځنګه چه دعدل اوانصاف مطابق شرع زياتيږی ورسره ورسره به برکتونه هم سواکيږی.ددې برخلاف دګناه ګارکس په باره کښې په حديث کښې دی چه دهٔ په مرګ باندې بندګان،ښارونه،اونې ځناورټول راحت بياموممی.په مسنداِمام احمدبن حنبل کښې دی چه د زيادپه زمانه کښې يوه تهيلئ بيامونديې شوه چه په هغې کښې دکهجورې دغټ هډوکی هومره د غنمو دانې وې.اوپه هغې کښې ليکلې شوې ووچه داپه هغه زمانه کښې زرغونيدې چه په کومه کښې به دعدل اوانصاف نه کاراخستلې کيدو.زيدبن اسلم ؒ نه روايت دې چه دفسادنه مرادشرک دې.ليکن داقول غورطلب

دې.بیافرمائی چه مال اوپیداواروکښې اوپه میووغلوکښې کمې دازمېښت په طور او د دوی
دبعضواعمالوپه بدله کښې دی.څنګه چه په بل ځائې کښې دی﴿وَبَلَوْنٰهُمْ بِالْحَسَنٰتِ وَالسَّيِّاٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ﴾
مونږ هغوی په نیکواوبدوکښې اخته کړل چه دوی راواپس شی. تاسو په زمکه باندې اوګرځئ اوپه خپله
اوګورئ چه ستاسونه مخکښې کوم مشرکان وودهغوی څه نتیجې شوې؟درسولانونه منلوپه وجه
اودالله تعالی سره کفرکولوڅه وبال په هغوی باندې راغې؟ دا اوګورئ اوعبرت حاصل کړئ.

| |
|---|
| فَاَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ الْقَيِّمِ |
| پس مضبوط اودروه \| مخ خپل \| دپاره ددین \| صحیح |
| نو خپل مخ د هغه قوی دین دپاره قائم (تیار) ساته |
| مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ |
| مخکښې ددې نه \| چې راشي \| هغه ورځ \| چې نشته واپس کیدل \| هغې لره \| دطرفه دالله نه \| |
| ددې خبرې نه وړاندې چې هغه ورځ راشي\| چې بیا دالله ﷻ (وینا) ته واپس راګرځیدل نه کیږی |
| يَوْمَئِذٍ يَّصَّدَّعُوْنَ۝ مَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ |
| هم په دغه ورځ به \| دا خلق دیو بل نه جدا جدا شي \| هغه چاچې کفر اوکړو \| نو په هغه دې وبال \| |
| په هغه ورځ به ټول خلق جدا جدا شي \|چې څوک انکار اوکړي\|نو د هغه دانکار ضرر به هم هغه ته رسی |
| كُفْرُهٗ ۚ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِاَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُوْنَ۝ لا |
| دکفر دهغه \| او هغه څوك \| چې عمل نې اوکړو نیك \| نو دپاره دځانونو خپلو \|دخلاصې لاره صفا کوی |
| اوڅوک چې نیک کارونه کوی \| نو خپل ځان له سامان (دراحت) تیاروی |
| لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ |
| دپاره ددې چې بدله ورکړی الله \| هغه خلقو ته \| چې ایمان نې راوړی دې \|او عملونه نې کړی دی نیك |
| نوکوم خلق چې ایمان راوړی \| ......................او هغوئ نیک عملونه هم کوی |
| مِنْ فَضْلِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْكٰفِرِيْنَ۝ وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ |
| دفضل خپل نه \| بیشکه هغه \| نه خوښوی \| کافران \| او دنښو دهغه نه (یوه داده) |
| هغوئ ته به په خپل فضل سره بدله ورکړی\| بیشکه الله کافران نه خوښوی\| اودهغه په نښو کښې |
| اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرٰتٍ وَّلِيُذِيْقَكُمْ مِّنْ رَّحْمَتِهٖ |
| چې رالیږی هغه \| هواګانې \| زیری ورکونکې \| دپاره ددې چې اوڅکوی تاسو ته \| درحمت خپل نه |
| یوه داده چې هغه (دباران) زیرې ورکونکې بادونه رالیږی \| د دې دپاره چې دخپلې مهربانئ |
| وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ |
| اودپاره ددې چې روانه شي\| کشتئ \|په حکم دهغه\|اودپاره ددې چې اولټوی ستاسو \|دفضل دهغه نه |
| خوند درباندې اوڅکوی \|اوددې دپاره هم چې دهغه په حکم بیړئ روانې وی\| اوچې تاسو(دتجارت په ذریعه) |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ۝ | وَلَقَدْ | اَرْسَلْنَا | مِنْ قَبْلِكَ |
| او دپاره ددې چې | تاسو شكر اوباسئ | او په تحقيق سره | او ليږل مونږه | مخكښې ستا نه |
| دهغه مقرر كړې روزى تلاش كړئ | اوچې دهغه شكر اداكړئ | اومونږ ستا نه وړاندې ډير پيغمبران خپلو | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رُسُلًا | اِلٰى قَوْمِهِمْ | فَجَآءُوْهُمْ | بِالْبَيِّنٰتِ | فَانْتَقَمْنَا |
| ډير رسولان | قومونو دهغوئ ته | پس ورغلل هغوئ ته | دواضحه نښنو سره | پس بدل واغستو مونږه |
| قومونه ته ليږلي وو | نوهغوئ به ورته ښكاره معجزې اوخودلې (خوبيابه ئې هم ايمان راونړو) | نو بيامونږ د | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنَ الَّذِيْنَ | اَجْرَمُوْا | وَكَانَ | حَقًّا | عَلَيْنَا | نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ۝ |
| دهغه كسانونه | چې جرم ئې اوكړو | او وو | حق | په مونږ باندې | امداد كول دمومنانو |
| نافرمانو خلقو نه بدله واخسته | اومومنانو سره مدد كول زمونږ ذمه وارى وه | | | | |

**قوله تعالى:: مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ**

**قيامت به دالله تعالیٰ په يوحكم سره راشي**:-الله تعالى خپلوبندګانوته په دين باندې دټينګ اودريدواوپه چستئ سره دالله تعالى دفرمانبردارئ كولوهدايت كوي.اوفرمائي چه دمضبوط دين طرفته مكمل متوجه شئ،ددې نه مخكښې چه دقيامت ورخ راشي.كله چه الله تعالى دهغه ورځې دراتلوحكم اوفرمائى نوبياهغې حكم لره ياراتلونكى وخت لره هيڅ خيز روستوكولې نه شي.په دغه ورځ به نيك او بد جدا جداشي.يوه ډله به په جنت كښې اوبله ډله به په بل اوركښې،كافران به دخپل كفردبوجه لاندې راګيروى .اونيك عمله خلق به دخپلونيكوعملونودذخيرې دوجې نه خوشحاله وى.الله تعالى به ددوى نيكۍ څوچنده زياتې كړى اودوى ته به دهغې نه څوچنده زياته بدله وركوى.يوه يوه نيكى لس لس بلكه اؤوه، اوؤه سوه بلكه ددې نه زياته به كړې شي اودوى ته به ملاوشي.كافرولره الله تعالى دوستان نه ساتى ليكن په هغوى به هم ظلم نه كيږى

**قوله تعالى:: وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ يُّرْسِلَ الرِّيٰحَ**

**داخوهم دهغه نعمتونه دى**:-دباران مخكښې خوږې هواګانې چليدل اوخلقوته دباران اميد وركول ، د دې نه پس باران وررول چه كلي پرې ابادوى،جاندارورى،په سمندرونوكښې،سيندونوكښې پرې جهازونه اوكشتئ اوچليږى،څكه چه دكشتوتګ هم په هواباندې موقوف دې.اوس تاسودخپلې ګټې وټې دپاره اخواديخوالرړاشئ،پس تاسوته پكاردى چه دالله تعالى په دې بې شميره نعمتونوباندې دهغه شكريه اداكړئ،

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا**

**دا تسلى ته نبى كريم ﷺ ته** ::بياخپل نبى اكرم ﷺ ته تسكين اوتسلئ وركولودپاره فرمائى چه كه خلق تانه منى نوته داخه نوې خبره مه ګڼره،ستانه مخكښې هم نوررسولانوته دهغوې امتونوداسې ګډې وډې خبرې اوړولې دى.هغوى هم صفاواضحه اوروښانه دليلونه اومعجزې اواحكام راوړى،په اخره كښې نه منونكى دعذاب په شكنجه كښې راګيركړې شواومومنانوته هغه وخت دهرقسمه بدئ نه خلاصې ملاوشو،په خپل فضل اوكرم سره الله تعالى جل شانه په نفس كريم باندې داخبره لازم كړې ده چه هغه به دخپلوايماندارو بندګانومددكوى.څنګه چه فرمان دې.(كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ) په ابن ابى حاتم كښې حديث دې چه رسول الله ﷺ فرمائى،كوم مسلمان چه دخپل رورمسلمان عزت بچ كړى په الله تعالى باندې حق دې چه هغه به د ده نه دجهنم اورلرې كړى.بياحضورﷺ اولوستل،(وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ۝).

اَللّٰهُ الَّذِیْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَيَبْسُطُهٗ

الله هغه ذات دي | چي رالیږي | هواگاني | پس پورته کوي | وريځي | پس خوروي ئې هغه |

الله ﷻ هغه ذات دي چي بادونه راليږي نو هغه (بادونه) وريځي راوچتوي | بيا چي الله ﷻ څنګه

فِي السَّمَآءِ كَيْفَ يَشَآءُ وَيَجْعَلُهٗ كِسَفًا فَتَرَى الْوَدْقَ

په آسمان کښي | څرنګې | چي غواړي هغه | او ګرزوي هغه | ټوټې ټوټې | پس تهٔ وينې باران |

غواړي نو هغه شان په فضا کښي ئې خوروي | او ټکړې ټکړې ترې جوړوي | نو وينې ګوري چي

يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ فَاِذَآ اَصَابَ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ

چي رااوزي | دمنځ دهغې نه | پس هر کله چي | اورسوي هغه | داباران | هغه چاته چي خوښه ئې شي

دهغې د مينځ نه باران راوريږي | بيا چي الله ﷻ هغه باران په کومو بندګانو باندې اووروي

مِنْ عِبَادِهٖٓ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ۞ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ

دبندګانو خپلو نه | بيا هغوئ | خوشحالي کوي | او بيشکه چي وو هغوئ | مخکښي ددې نه |

نو هغوئ پرې خوشحالي شروع کړي | اګر که هغوئ دباران د وريدو نه وړاندې ددې

اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِيْنَ ۞

چي نازل کړې شي | په هغوئ باندې (باران) | مخکښي دښکاره کيدو دوريځي نه | خامخا نااميده |

.........خوشحالئ نه وړاندې بيخي نااميده وو | ..........................

فَانْظُرْ اِلٰٓى اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ

پس اوګوره | نښو د رحمت | دالله ته | چي څرنګې | ژوندي کوي زمکه | روستو دمرګ دهغې نه |

نو دالله ﷻ درحمت دې نخښو ته اوګوره | چي څنګه زمکه دمرګ نه پس بيا راژوندئ کوي ؟

اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۞

بيشکه هغه (الله) | خامخا ژوندي کونکي دې | دمړو | او هغه | په هر څيز باندې قادر دې |

هم دغه الله ﷻ دې چي مړي راژوندي کوي | او هغه په هر څه باندې قادر دې

وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا

او که اوليږو مونږه | هوا | پس اووينې دوئ هغه (فصل خپل) | زيړ | نو خامخا به شي |

او که مونږ په دوئ باندې بل شان سيلئ راوسته | او دوئ خپل فصل زيړ اووينې | نو ددې

مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ ۞

روستو دهغې نه | چي انکار به کوي |

نه پس به هم په (زړونعمتونو) ناشکري اوکړي

قوله تعالى:: اَللّٰهُ الَّذِیْ یُرْسِلُ الرِّیٰحَ

یخې یخې هواګانې اوباران دالله ﷻ د قدرت دلائل دی:-الله تعالی بیان فرمانی چه هغه هواګانې رالیږی.چه وریځې راوچتې کړی یاخودسمندرونونه یاځنګه چه اودچرته نه چه دالله تعالی حکم وی.بیارب العالمین وریځې لره په اسمان باندې خوره کړی.دازیاته کړی،لږې لره زیاته کړی.تاسوبه اکثرلیدلې وی چه یوه لیشت یادوه لیشتې وریځ راغله اوبیاچه خوره شوه نوداسمانونوغاړې ئې پټې کړې،اوکله به موداهم لیدلې وی چه دسمندرونونه داوبوډکې وریځې اوچتیږی.هم دامضمون په ایت ﴿وَهُوَالَّذِیْ یُرْسِلُ الرِّیٰحَ﴾ الخ..کښې بیان فرمائیلې دې بیاهغهٔ ټوټې اوتهه درتهه کړی.هغه داوبودوچې نه توري وی،زمکې سره نزدې شی بیاباران دهغه وریځونه په وریدوشی.چرته چه اووریږی دهغهٔ خاني خلق په خوشحالو شی، بیافرمانی چه هم دغه خلق دباران نه ناامیده شوې وو،دپوره ناامیدئ په وخت بلکه دناامیدئ نه پس په دوی باندې بارانونه اووریدل اوهرطرف ته اوبه اوبه شی،دوه ځله﴿من قبل﴾ لفظ راوستل دتاکیددپاره دی. د،ه، ضمیر مرجع(انزال)دې.اوداهم کیدې شی چه داتاسیسی دلالت وی. یعنی دباران کیدونه مخکښې دوی ددې محتاج وو.اوهغه حاجت پوره شی اودهغې نه مخکښې په وخت ختمیدوباندې دباران نه کیدویه وجه دوی مایوسه شوی وو.بیاددې ناامیدئ نه پس ناګهانه وریځې راوچتیږی اوباران وروی،اوهرطرف ته اوبه په نظر راځی،اودهغوی اوچه زمکه ترشی.قحط سالی په ترسالئ کښې بدله شی،یاخودازمکه یواوچ میدان وواوس هرطرف ته شینکې په نظرراځی،

قوله تعالی:: اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْیِ الْمَوْتٰی

اوګورئ پروردګارعالم دباران په وجه مړه زمکه څنګه ژوندئ کوی؟یادساتئ چه دکوم الله تعالی داقدرت تاسووینئ هغه یوه ورځ مړولره هم دهغوی دقبرونونه راویستونکې دې.هرکله چه دهغوی بدنونه به خاورې شوې وی.پوهه شئ چه الله تعالی په هرڅه باندې قدرت لری.بیافرمانی چه کهٔ مونږ تیزه هواوچلوواوطوفانونه راشی اوددوی داشنهٔ پټی بربادشی نودوی بیاکفرکول شروع کړی.نوپه سوره واقعه کښې هم دغه بیان شوې دې.﴿ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ﴾ نه ﴿ مَحْرُوْمُوْنَ﴾ پورې.

قوله تعالی:: وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِیْحًا

حضرت عبدالله بن عمرﷺفرمانی چه هواګانې اتهٔ قسمه دی.څلوردرحمت دی اوڅلوردزحمت.ناشرات، مبشرات، مرسلات، او ذاریات، څو درحمت دی.اوعقیم،صرصر،عاصف،اوقاصف دعذاب دی.په دې کښې اولنئ دوه داوچې دی.اوداخری دوه دلمدې. حضوراکرمﷺفرمانی چه هواګانې ددویمې نه مسخردی یعنی ددویمې زمکې نه،کله چه الله تعالی دعادیانو د هلاکت اراده اوفرمائیله نود هواګانوداروغه ته ئې داحکم ورکړو،هغه تپوس اوکړوچه جناب باری تعالیاایازهٔ دهواګانوبه خزانه کښې دومره سورې اوکړم څومره چه دغوئی سپیږمه وی؟نودالله تعالی دطرف نه ورته فرمان اوشوچه نه نه که داسې اوشونوټوله زمکه اوڅه چه په زمکه کښې دی ټول به وران ویجاړشی.دومره نه،بلکه دومره سورې اوکړه څومره چه په ګوته کښې وی.اوس صرف ددومره سوری نه هوااوچلیده ترکوم خانې پورې لاړه هغه ځانې بربادکړو.په څه څیزچه تیره شوه هغه ئې بې نشانه کړه.داحدیث غریب دې اوددې مرفوع کیدل منکردی. زیاته ظاهره داده چه دا په خپله دحضرت عبدالله بن عمرﷺقول دې.

| | | |
|---|---|---|
| فَاِنَّكَ | لَا تُسْمِعُ | الْمَوْتٰی |
| پس بیشکه تهٔ | نهٔ شی اوروِلې (خبره) | مړوته |
| نو ته مړو ته خبرې اوروِلې نشې | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تُسۡمِعُ | الصُّمَّ | الدُّعَآءَ | اِذَا | وَلَّوۡا | مُدۡبِرِيۡنَ۝ | وَمَآ اَنۡتَ |
| او نهٔ شي اورولې \| كنړو ته \| بلنه \| كله چې \| اوګرځي \| شاكونكى \| اونهٔ ئې ته \| | | | | | | |
| اوكنړو ته اواز رسولې نشي چې كله درته هغوئ شاكړي \| ته خو بس هغه | | | | | | |
| يَهۡدِ | الۡعُمۡيِ | عَنۡ ضَلٰلَتِهِمۡ ؕ | اِنۡ تُسۡمِعُ | اِلَّا | مَنۡ | يُّؤۡمِنُ |
| لاربنودونكي \| ړندوته \| دګمراهئ دهغوئ نه \| اتهٔ نشي اورولې \| مګر \| هغه چاته \| چې ايمان راوړي | | | | | | |
| چاته (ددين) خبره اورولې شې \| ..................چې زمونږ په ايتونو | | | | | | |
| بِاٰيٰتِنَا | فَهُمۡ | مُّسۡلِمُوۡنَ۝ | | | | |
| په ايتونو زمونږه \| پس هغوئ \| غاړه اېښودونكى دى \| | | | | | | |
| يقين ساتى \| اوهم د هغه فرمانبردار دى \| | | | | | | |

**قوله تعالى:: فَاِنَّكَ لَا تُسۡمِعُ الۡمَوۡتٰى**

**ايامړي هم اوري؟**:-باري تعالى عزوجل فرمائى چه څنګه داستاد وس طاقت نه بهرده،چه مړي كوم چه په قبرونوكښې دى ته ورته خپل اوازواوروې،اوڅنګه چه داناممكنه ده چه كونړكس هركله چه هغه مخ اړولې روان وى تهٔ ورته خپله خبره واورولې شې،هم دغه شان كوم چه دحق نه ړاندهٔ دى نوتهٔ دهغوى رهبرى اودهدايت طرف ته راوستل نه شې كولې.اوالله تعالى په هرڅيزباندې قادردې.هغه چه كله اوغواړي مړوته دژوندواوازهم اورولې شى،هدايت اوضلالت دهغهٔ دطرف نه دې.تهٔ خوصرف هغوى نه اورول كولې شې،څوك چه ايمانداروى اودالله تعالى په وړاندې ټيټېدونكى وى.دهغهٔ فرمانبرداره وى اوداخلق حق اوري هم اومنى ئې هم.داحالت خودمسلمان شو،اوددې نه مخكښې كومه خبره چه بيان شوې وه هغه دكافرده.څنګه چه په بل ايت كښې﴿ اِنَّمَا يَسۡتَجِيۡبُ الَّذِيۡنَ يَسۡمَعُوۡنَ ؔ ﴾ الخ...ستااوازبه هم هغه قبلوى چه په غورسره ئې اورى.مړى به الله تعالى راژوندى كړى بيابه ټول دهغهٔ طرف ته واپس كړې شى.په بل روايت كښې دى چه حضورﷺهغه مشركانوته كوم چه په جنګ بدركښې د مسلمانانو دلاسه قتل شوې وو،اوبدرپه كندوكښې دهغوى لاشونه غورځولې شوې وو،دهغوى دمرګ نه درې ورځې پس هغوى ته خطاب اوكړواوهغوى ئې اوړټل،اوغيرت ئې وروستو،حضرت عمرؓچه دااوليدل نوعرض ئې اوكړو،چه يارسول اللهﷺاتاسوهغوى ته خطاب كوئ چه مړهٔ شوې دى،نوحضورﷺورته اوفرمائيل قسم مې دې په هغه ذات وى دچاپه قبضه كښې چه زماساه ده تهٔ هم زماداخبره كومه چه زهٔ دوى ته كوم دومره نه اورې څومره ئې چه دوى اورى.اودوى جواب نه شى وركولې،حضرت عائشهؓچه داواقعه دحضرت عبدالله بن عمرؓدخولې نه واوريده نووې فرمائيل چه حضورﷺداسې فرمائيلي دى چه دوى ته اوس ښه پته ده چه مابه دوى ته څه وئيل هغه حق دى. بياحضورﷺدمړونه اوريدوبه دې ايت باندې استدلال اوكړو،﴿اِنَّكَ لَا تُسۡمِعُ الۡمَوۡتٰى﴾ حضرت قتاده فرمائى چه الله تعالى دوى ژوندى كړې وو تر دې پورې چه دحضورﷺخبره دوى واوريده،چه دوى ته پوره پوره پښيمانتيااوشرمندګى وى. خودعالمانوپه نزددحضرت عبدالله بن عمرؓروايت بالكل صحيح دې.څكه چه ددې ډير شواهد دى .ابن عبدالبر دابن عباسؓنه مرفوعاً يوروايت دصحت سره نقل كړې دې چه كوم دخپل يورور په قبرباندې تيرېږي كوم چه دهٔ په دنياكښې پېژندواوسلام ورته كوى نوالله تعالى دهغهٔ روح واپس كړى تردې پورې چه هغه جواب وركړي.

اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ

| الله هغه ذات دی | چی پیدا ئي کړی تاسو |

| الله ﷻ هغه ذات دی چي تاسو ئي د کمزورئي

مِّنْ ضُعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْۢ بَعْدِ ضُعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ

دکمزورئ دحالت نه | بیا ئي درکړو | روستو | د(دي) کمزورئ نه | طاقت | بیا ئي درکړه |

په حالت کښي پیدا کړئ | بیاد کمزورئ نه پس ئي طاقت درکړو | بیانې د(ځوانئ) دطاقت نه

مِنْۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضُعْفًا وَّشَيْبَةً ۭ يَخْلُقُ مَا يَشَاۗءُ ۚ

روستو | دقوت نه | کمزوری | او بوډا والي | پیدا کوی | هغه | چی غواړی هغه |

پس کمزوری راوسته | اوبوډاتوب ئي راوستلو | هغه چي څه غواړی نو هغه پیدا کوی

وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْقَدِيْرُ ۝ وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ

او هغه په هر څه پوهه دی | او قادر دی | او په کومه ورځ | چی قائميږی | قیامت |

او الله ﷻ په هرڅه پوهه او په هرڅه قادر دی | او په کومه ورځ چه قیامت قیامت راشی

يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ ڏ مَا لَبِثُوْا غَيْرَ سَاعَةٍ ۭ

نو قسمونه به خوری | مجرمان خلق | چی وخت نهٔ دې تیر کړي هغوئ | بي ديوساعت نه |

نو مجرمان بهٔ قسمونه خوری | چي مونږ (په دنیا کښي) د لږ وخت نه زیات پاتې شوی نه وو

كَذٰلِكَ كَانُوْا يُؤْفَكُوْنَ ۝ وَقَالَ الَّذِيْنَ

دارنګي | وو هغوئ | چی دوکي به ئي خوړلي په دنیا کښي | او وائي به | هغه کسان |

دوئ په دنیا کښي هم داشان اړولی چلیدل | ..................اوکومو کساتو ته چه الله تعالی علم او

اُوْتُوا الْعِلْمَ وَالْاِيْمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ

چی ورکړې شوي وو | علم | او ایمان | چی وخت تیر کړي دي تاسو | په کتاب دالله کښی |

ایمان (دواړه) ورکړي وو | هغوئ به اووائی چي تاسو دالله ﷻ دلیک مطابق (په موجود

اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ ۡ فَهٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَلٰكِنَّكُمْ كُنْتُمْ

دورځي دراپورته کیدو پورې | پس داده | ورځ دپورته کیدو | ولیکن تاسو | وئ

موده کښي قیامت تر ورځي پورې پاتې شوی یئ | نودا نن دٔ قیامت هغه ورځ ده | مګر

لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ فَيَوْمَىِٕذٍ لَّا يَنْفَعُ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

چی نهٔ پوهیدئ | پس په دغه ورځ به | فائده نه ورکوی | هغه کسانوته | چی ظلم ئي کړی دې

تاسو پرې نه پوهیدلئ | نو په دغه ورځ به ظالمانو ته خپل عذرونه هیڅ فائده ورنکړی

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَعْذِرَتُهُمْ | وَلَا هُمْ | يُسْتَعْتَبُوْنَ۝ | |
| عذر دهغوئ | اونه به هغوئ | اوبللي شي رضا دالله ته | |
| اونه به دوی ته دالله ﷻ دراضي کولو موقع ورکړې شي | | | |

**قوله تعالى: اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ**

**دانسان اصل څو دي:**-دانسان په ترقئ اوتنزلئ باندې نظرواچوني ددهٔ اصل خوخاوره ده،بيادنطفې نه، بيا دويني نه،بيادغو ښې دټکړې نه،بياني هډوکوته غوښه واغوستې شی،بيا هډوکوته څرمن وراغوستې شی،بياپه کښې روح واچولې شی،بياد موردخيټې نه کمزورې اوناتوان پيداشی،بيابه لږ لږ غټيږی ،اومضبوط شی،بيادماشوموالی دزمانې مزې واخلی، بياځوانې ته رانزدې شی،بياځوان شی، او اخر ترقی ني اودريږی.اوس اندامونه ني بياپه کمزورې کيدوشروع شی،طاقت ني په کميدوشی،نيم ځوانې عمرته اورسی،بيابوډاشی اوبيامکمل بوډاشی.دطاقت نه پس داکمزوری هم قابل عبرت وی، چه همت ني کم وی،اوريدل،ليدل،تګ راتګ،ناسته پاسته،راخستل ،نيول غرض دهرڅه خيزطاقت ني کم شی.اوپه مزه مزه بالکل ختم شی.اوټول صفتونه ني متغيرشی.بدن ني چيچړ شی،انګی پکښې ننوځی،غاښونه ني مات شی،ويختهٔ ني سپين شی،داددې دهغهٔ طاقت نه پس ضعف اوبوډاتوب.هغهٔ چه څه غواړی کولې شی،جوړول اوورانول دهغهٔ دقدرت ادنی کرشمې دی.ټول مخلوق دهغهٔ غلام،هغه دټولومالک،هغه عالم،هغه قادر،نه دهغهٔ په شان دچاسره علم شته اونه دهغهٔ په شان قدرت،حضرت عطيه عوفي وائی چه مادا ايت(ضعفا)پورې دضاپه پيش سره دحضرت ابن عمر ﷺپه وړاندې اولوستو نو هغوی هم دا تلاوت اوفرمانيلو،اووې فرمائيل چه ماهم درسول اللهﷺپه وړاندې دا ايت دومره لوستې وو، چه تااوونيلو،لکه څنګه چه ماستاپه قرات باندې قرات شروع کړو (ابوداود ، ترمذی، مسند احمد)

| | | | |
|---|---|---|---|
| | وَيَوْمَ | تَقُوْمُ | السَّاعَةُ |
| | او په کومه ورځ | چی قائميږی | قيامت |
| | او په کومه ورځ چه قيامت قيامت راشي | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُقْسِمُ | الْمُجْرِمُوْنَ ۙ۬ | مَا لَبِثُوْا | غَيْرَ سَاعَةٍ ؕ |
| نو قسمونه به خوری | مجرمان خلق | چی وخت نهٔ دې تير کړې هغوئ | بې ديوساعت نه |
| نو مجرمان بهٔ قسمونه خوری چې مونږ (په دنيا کښې ) د لږ وخت نه زيات پاتې شوی نه وو | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَذٰلِكَ | كَانُوْا | يُؤْفَكُوْنَ۝ | وَقَالَ | الَّذِيْنَ |
| دارنګې | وؤ هغوئ | چی دوکې به ني خوړلې په دنيا کښی | او وائی به | هغه کسان |
| دوئ په دنيا کښې هم داشان اړولی چليدل ..................اوکومو کساتو ته چه الله تعالی علم او | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اُوْتُوا | الْعِلْمَ | وَالْاِيْمَانَ | لَقَدْ لَبِثْتُمْ | فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ |
| چی ورکړې شوې وؤ | علم | او ايمان | چی وخت تير کړې دې تاسو | په کتاب دالله کښی |
| ايمان (دواړه) ورکړې وو هغوئ به اووائی چې تاسو دالله ﷻ دليک مطابق ( په موجود | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِلٰى يَوْمِ الْبَعْثِ | فَهٰذَا | يَوْمُ الْبَعْثِ | وَلٰكِنَّكُمْ | كُنْتُمْ |
| دورځې دراپورته کيدو پورې \| پس داده \| ورځ دپورته کيدو \| | | | ولیکن تاسو \| | وئ |
| موده کښې قیامت تر ورځې پورې پاتې شوی يئ \| نو دا نن د قیامت هغه ورځ ده \| مګر | | | | |
| لَا تَعْلَمُوْنَ۝ | فَيَوْمَئِذٍ | لَّا يَنْفَعُ | الَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا |
| چې نۀ پوهيدئ\| پس په دغه ورځ به \| فائده نۀ ورکوی \| هغه کسانوته \| چې ظلم ئې کړې دې | | | | |
| تاسو پرې نه پوهيدلئ \| نو په دغه ورځ به ظالمانو ته خپل عذرونه هيڅ فائده ورنکړی | | | | |
| مَعْذِرَتُهُمْ | وَلَا هُمْ | يُسْتَعْتَبُوْنَ۝ | | |
| عذر دهغوئ \| اونۀ به هغوئ \| اوبللې شی رضا دالله ته \| | | | | |
| اونه به دوی ته دالله ﷻ دراضی کولو موقع ورکړې شی \| | | | | |

**قوله‌تعالى:: وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يُقْسِمُ الْمُجْرِمُوْنَ**

**په دنيا کښې هم ددروغوقسمونه اوپه اخرت کښې هم:** الله ﷻ خبرورکوی چه کافران ددنیااواخرت دکارونونه بالکل جاهل دی.ددوی ددنیاجهالت خودادې چه دالله تعالى سره نورشريکوی،اوپه اخرت کښې به داجهالت کوی چه قسمونه به خوری اووائی به چه مونږ په دنیاکښې څه لږ شان وخت پاتې وو.
ددې نه به ددوی مقصداوی چه د دومره لږ وخت په مونږ څه حجت قائميدې نه شی.مونږ دې معذوره اوګڼړلې شو.څکه ئې اوفرمائيل چه دوی دلته څنګه ګډې وډې خبرې کوی په دنیاکښې هم دوی بې لارې وو،فرمائی چه ددوی په دې وینابانديې څنګه چه به په دنیاکښې ددوی علماء کراموددوی دقائله کولوکوشش کوو،په اخرت کښې به هم دوی ته اووائی چه تاسوددروغوقسمونه خورئ.تاسوپه کتاب الله کښې یعنې په کتاب الاعمال کښې دپيدائش نه واخله تردوباره پیداکیدوپورې اوسيدئ، خو تاسو بې علمه اوبالکل جاهلان خلق ئې.پس دقيامت په ورځ به ظالمانولره خپلوکروباندې معذرت کول بې فائدې وی.اوهغوی به دنیاطرف ته واپس نه کړې شی.څنګه چه فرمان دې.﴿وَاِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ۝﴾ یعنی کۀ هغوی دنیاطرف ته واپس راتلل اوغواړی نوراتلې نه شی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | وَلَقَدْ ضَرَبْنَا | لِلنَّاسِ |
| \| او بيان کړی دی مونږه \| دپاره دخلقو \| | | | | | |
| \| اومونږد خلقو دفائدې دپاره | | | | | |
| فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ | مِنْ كُلِّ مَثَلٍ | وَلَئِنْ | جِئْتَهُمْ | بِاٰيَةٍ | لَّيَقُوْلَنَّ |
| په دې قرآن کښې \| هر قسم مثالونه \| اوکه \| راوړې تۀ دوئ ته \| يوه نښه \| نو خامخا به وائی | | | | | |
| په دې قرآن پاک کښې هر قسم مضامين بيان کړی دی\|اوکه چرې ته دې کافرانو ته څه معجزې پيش کړې | | | | | |
| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْٓا | اِنْ اَنْتُمْ | اِلَّا | مُبْطِلُوْنَ۝ | |
| هغه کسان \| چې انکار کړې دې هغوئ دمنلو نه \| چې نۀ يئ تاسو \| مګر \| باطلونکی يئ \| | | | | | |
| نو بيا هم چا چې کفر کړې دې \| هغوئ به داوينا کوی چې تاسو خوبس دروغژن يئ | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَذٰلِكَ | يَطْبَعُ اللّٰهُ | عَلٰى قُلُوْبِ | الَّذِيْنَ | لَا يَعْلَمُوْنَ۝ | |
| همدارنگې اتاپه (مهر) وهي الله | په زړونو | د هغه کسانو | چې علم نه لري | | |
| دغه شان الله ﷻ دهغه خلقو په زړونو مهرلګوي ..........کوم کسان چې نه پوهيږي | | | | | |
| فَاصْبِرْ | اِنَّ | وَعْدَ اللّٰهِ | حَقٌّ | وَّلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ | |
| پس صبر کوه (اے نبي ﷺ) | بيشکه | وعده دالله | حقه ده | او هر ګز سپک اونه مومي تالره | |
| نو ته صبر کوه دالله ﷻ وعده ريښتيني ده او (خيال ساته) چې دابې يقينه خلق | | | | | |
| الَّذِيْنَ | لَا يُوْقِنُوْنَ۝ ع | | | | |
| هغه کسان | چې يقين نه کوي | | | | |
| تا قابو نه کړي شي | | | | | |

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ**

**او ستا مسئله بالکل واضح خو دوئ ضديان دي.**-حق مونږ په دې پاك کلام کښې پوره پوره واضح کړې دې.اوپه مثالونوسره موېږې پوهه کړې دې.چه په خلقودابنکاره شي،اوددې په تابعدارئ کښې اولګي.که دوی ته هرڅنګه معجزه راشي که هرڅنګه دحق نشان اووينی نودوی به فوراًبغيرد څه غوراوفکرنه اووائي چه داجادودې.باطل دې.دروغ دی،اوګورئ سپورمئ نې دوه ټکړې کيدل اوليدل اوايمان نه راوړی.

په خپله په قران کريم کښې ايت ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ﴾ الخ...کښې دی.چه په چاباندې ستادرب خبره پوره شوې ده هغوی به ايمان نه راوړی،ګوکه هغوی ته هرقسمه نشانات راشي،تردې پورې چه هغوی ددردناك عذاب معائنه اوکړي.پس دلته هم فرمائي چه ددې بې علمه خلقوپه زړونوباندې هم داسې مهراولګي،

**قوله تعالى:: فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ**

**حضورﷺته زړه مه خفه کوه دالله تعالى وعده رښتونې ده ::**اې نبي کريمﷺته صبراوکړه،اوددوی مخالفت اودشمنئ باندې صبرکوه.دالله تعالى وعده رښتونی ده.هغه به تاپه دوی باندې يوه ورځ ضرورغالبه کوي.اوستامددبه کوي.اوپه دنيا او اخرت کښې به تاته اوستاتابعداروته په مخالفينوباندې غلبه ورکوي.تاته پکاردی چه په خپل کښې لګيا اوسې،په حق مضبوط اودريږه،اويوانې هم اخواديخواکيږه مه،په دې کښې ټول هدايت دې ، باقي ټول دباطلودهيرې دې.حضرت قتادهؒفرمائي چه حضرت عليؓيوه ورځ دسحرمونځ کولو،يوخارجي دهغوی نوم واخستو او په زوره زوره نې ددې ايت تلاوت اوکړو﴿ وَلَقَدْ اُوْحِيَ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ لَئِنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ۝﴾ دوی په خاموشئ سره داايت واوريدواوپه مونځ کښې نې ددې جواب په ايت﴿ فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِيْنَ لَا يُوْقِنُوْنَ۝﴾ تلاوت اوفرمائيلو،(ابن جرير،ابن ابی حاتم) (هغه حديث په کوم کښې چه ددې سوره مبارك فضيلت اوددې د سحرپه وخت کښې تلاوت په مانځه کښې مستحب کيدل ثابتيږی.)

يوصحابيؓفرمائي چه حضورﷺيوه ورځ دسحرمونځ په ورکولوکښې ددې سورت قرات اوفرمائيلو،دقرات په دوران کښې هغوی ته څه وهم شان اوشو،چه فارغ شونووې فرمائيل،په تاسوکښې بعضې خلق داسې دی چه زمونږ سره په مانځه کښې شريك شي ولې باقاعده اوټيك اودس نه کوي،تاسوکښې چه څوك زمونږ سره په مانځه کښې شريکيږی هغه له په ښه طريقې سره اودس کول پکار دی. (مسند احمد) ددې اسنادحسن دی.متن هم حسن دې.اوپه دې کښې يوه عجيبه رازاولويه خبره ده اوهغه داچه

دحضورﷺ دمقتديانو صحيح اودس نه كيدو اثر په حضورﷺ باندې پريوتو، پس ثابته شوه چه د مقتديانو دمونځ تعلق دامام دمونځ سره دی. (الحمدلله) دسورة روم تفسير ختم شو.

| ركوع ګاني | سورة لقمٰن مكية وهي اربع وثلاثون اٰية واربع ركوعات |
|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ |
| ۴ | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زيات رحم كونكې دې ۳۱ |

الٓمّٓ ۚ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ الۡحَكِيۡمِ ۙ هُدًى وَّرَحۡمَةً

ا ل م | دا | ايتونه | دكتاب حكمت لرونكي دی | لارښودونكي دي | او رحمت دي |

الف لام ميم | دا د داسې كتاب ايتونه دی | چې په حكمت پوره دې

لِّلۡمُحۡسِنِيۡنَ ۙ الَّذِيۡنَ يُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤۡتُوۡنَ الزَّكٰوةَ

دپاره دنيك عملو خلقو | هغه خلق | چې قائيموی | مونځ | او وركوی زكاة |

د نيكانو دپاره هدايت او رحمت دي | هغه كسان چې دمونځ پابندی كوی | او زكوة وركوی

وَهُمۡ بِالۡاٰخِرَةِ هُمۡ يُوۡقِنُوۡنَ ؕ اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى

او هغوئ په اخرت باندې | هم هغوئ | يقين لری | دا كسان | په نيغه لاره دی |

او په اخرت باندې پوره پوره يقين ساتي | دغه خلق دی چې دخپل رب دطرفنه به په

مِّنۡ رَّبِّهِمۡ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ ۞ وَمِنَ النَّاسِ

دطرفه درب خپل نه | او دا كسان | هم دوئ | خلاصې موندونكي دی | او ځينې دخلقو نه |

نيغه لار روان وی | اوهم دغه كسان كامياب دی |.......او په خلقو كښې هغه (بدبخت) هم دی

مَنۡ يَّشۡتَرِىۡ لَهۡوَ الۡحَدِيۡثِ لِيُضِلَّ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ

هغه څوك دی | چې اخلی | عبث خبری | دپاره ددې چې بې لارې كړی خلق | دلارې دالله نه |

چې دالله ﷻ نه غافله كونكې خبرې په بيعه اخلی اچې خلق پرې په جهالت سره دالله ﷻ دلارې

بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ۖ وَّيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ

بغير دعلم نه | او نيسي دې لره | په ټوقو سره | دا كسان چې دی | دې دوئ دپاره | عذاب |

نه بې لارې كړی | اود الله ﷻ په رالیږلې تعليم پورې ټوقې اوكړی | داسې خلقو دپاره

مُّهِيۡنٌ ۞ وَاِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِ اٰيٰتُنَا وَلّٰى

سپكونكې دې | او كله چې | لوستلې كيږی | په هغه باندې | آيتونه زمونږ | نومخ واړوی |

سپونكې عذاب دې | او څه وخت چې هغه ته زمونږ ايتونه لوستلې شی | نودوئ ترينه

مُسۡتَكۡبِرًا كَاَنۡ لَّمۡ يَسۡمَعۡهَا كَاَنَّ فِىۡۤ اُذُنَيۡهِ

تكبر كونكې | لكه چې | نۀ وی اوريدلی هغه هغه آيتونه | لكه چې | په غوږونو دهغه كښې |

په تكبر سره مخ اړوی | لكه چې هغو آوريدلي ئې نه دی | لكه چې غوږونه ئې كاڼه دی

| | | |
|---|---|---|
| وَقْرًا | فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ | أَلِيمٍ ۝ |
| درووندوالي وي \| پس زيري وركړه په عذاب \| دردناك سره \| | | |
| نو(ائې پيغمبره) د دردناک عذاب زيري ورته وركړه \| | | |

**قوله تعالى:: هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ ۝**

**قران هدايت رحمت اوشفاء ده:-** دسوره بقرې دتفسيرپه اول كښې دحروف مقطعاتومعنى اومطلب واضح كړې شوې دې.داقران هدايت شفاء،اورحمت دې.دهغه نيكوكارودپاره چه دشريعت پوره پابند وي. مونځونه اداكوي.داركانو اوقاتووغيره دحفاظت سره سره نوافل اوسنت وغيره هم نه پرېږدي.فرض زكواة اداكوي،صله رحمي،سلوك اواحسان،سخاوت كوي، داخرت په جزادهغوي كامل يقين دې، د دې وجې نه دالله تعالى طرف ته پوره پوره رغبت كوي.دثواب كارونه كوي،اودالله تعالى په اجرباندې نظرساتي.نه رياكاري كوي اونه دخلقونه شاباش غواړي.ددې اوصافوخاوندان په نيغه لاره دي،دالله تعالى په لاره باندې لګولې شوې دي.اوهم دغه هغه خلق دي چه په دين اودنياكښې فلاح خلاصې اوكاميابي حاصلونكي دي.

**قوله تعالى:: وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِيْ**

**ګانې ميوزک موسيقى دكافرانوخوى دې او د ايت مطلب اتفاق سره هم ده دې:-** پورته بيان شوې ووچه نيك بخت چاچه دالله تعالى دكتاب نه هدايت بياموندواودهغې په اوريدوسره به نې نفع حاصلوله، نو دلته بيان كيږي چه دهغه بدبختانو څوك چه دكتاب الله داوريدونه نفع نه حاصلوي اودهغې په ځاني ډول باجې اوري،چنانچه ددې ايت په تفسيركښې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺفرمائي،په الله تعالى مې دې قسم وي ددې نه مرادسندرې اوسازونه دي.په بل ايت كښې دي چه دحضور ﷺنه ددې ايت د مطلب پوښتنه اوشوه نوحضور ﷺدرې خله قسم اوخوړواووې فرمائيل چه ددې نه مرادسندرې اوسازونه دي.هم دغه قول دحضرت ابن عباس ﷺ،جابر ﷺ،سعيدبن جبير،مجاهد،مكحول،عمروبن شعيب، على ابن هذيمه رحمة الله عليهم دې. امام حسن بصرى m فرمائى چه داايت دسندرو او سازونوپه باره كښې نازل شوې دې.حضرت قتاده ﷺ فرمائي چه ددې مرادصرف هغه نه دي چه په دې لهولعب كښې پيسې خرچ كوي دلته داخستلو نه مرادخوښول اومحبت ورسره ساتل دي.دانسان دپاره هم دغه ګمراهى كافى ده چه دباطل خبره په حق باندې خوښه كړي.اودنقصان ځيزدنفعې په ځيزباندې مقدم كړي.يوقول داهم دې چه دلغوخبرې اخستلونه مرادسندرغاړو وينځو اخستل دي.چنانچه په ابن ابى حاتم وغيره كښې درسول الله ﷺدافرمان دې چه دګانې وئيونكواخستل اوخرڅول حلال نه دي.اوددې دقيمت خوراك حرام دې.هم ددوي په باره كښې داايت نازل شوې دې.امام ترمذى هم داحديث راوړې دې اودې ته نې غريب وئيلې دې،اوددې يوراوى على بن يزيدته ضعيف وئيلې دي.زه وائيم چه په خپله على بن يزيد،دهغه استاذان اودهغه ټول شاګردان ضعيف دي.والله اعلم.دضحاك m قول دې چه ددې مرادشرك دې.دامام ابن جريرفيصله داده چه هره هغه خبره چه دكلام الله اودشرع داتباع نه دې منع كړي هغه ددې ايت په حكم كښې داخل نه دي.

**قوله تعالى:: وَإِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا**

غرض ددې نه داسلام اواهل اسلام مخالفت دې. په يوقرات كښې (ليضل)دې نولام به لام عاقبت وي،يالام تعليل به وي.يعنى امرتقديرى به دې كارګزارئ سره خامخاكيږي.داسې خلق دالله تعالى لارې لره ټوقې خندا جوړه كړي.اودالله تعالى ايتونوپورې هم ټوقې كوي،اوس ددوي انجام هم واورئ چه څنګه دوي دالله تعالى لار،دالله تعالى كتاب،پورې ټوقې مسخرې اوسپكاوې كړې وي دقيامت په

ورخ به ددوی سپکاوې اوکړې شي. اوپه خطرناکو عذابونو کښې به ذليل اورسواکړې شي. بيابيان کيږي چه دابدنصيبه چه په سندرو او سازونو او لوبو توقوب اندې منين دې. دقران دايتونونه تختي اودهغې نه غوړونه کانړه کړي،دې داپه ده ښه نه لګي،اوري ئې خوهيڅ توجونه ورکوي،بلکه ددې اوريدل پرې ښه نه لګي،هيڅ مزه نه ورکوي،هغه دافضول کارګنړي،چونکه دهغه په زړه کښې ددې هيڅ اهميت اوعزت نشته نوددې وجې نه هغه ددې نه څه نفع نه شي حاصلولې،هغه ددې نه محض بې پرواه دې.خيردلته دالله تعالى په ايتونوباندې زړه تنګې کيږي،نودقيامت په ورخ به هم هغه عذابونه وى چه ډيربه پرې تنګ شي.دلته قراني ايتونواوريدوسره ورته خفګان وى هلته به تکليف رسونکي عذابونه خامخاتيروى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | | | | | اٰمَنُوْا |
| بيشکه هغه کسان | | | | | چې ايمان راوړي |
| بيشکه څوک چې ايمان راوړي | | | | | |
| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | لَهُمْ | جَنّٰتُ | النَّعِيْمِ | | خٰلِدِيْنَ |
| اوعملونه اوکړې نيک | دى دهغوئ دپاره | جنتونه | دنعمتوتو | | هميشه به وى هغوئ |
| اودنيکئ کارونه کوى \| هغوئ لره د نعمتونو باغونه تيار دى \| چې هميشه به په کښې | | | | | |
| فِيْهَا | وَعْدَ اللّٰهِ | حَقًّا | وَهُوَ | الْعَزِيْزُ | الْحَکِيْمُ |
| په هغې کښې | دا وعده دالله ده | حقه (پخه) | او هغه | غالب دې | دحکمت خاوند دې |
| (خوشحاله) اوسيږي \| دا دالله ﷻ پخه وعده ده \| او هغه زبردست اوصاحب د حکمت دې | | | | | |

قوله تعالى: اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

قران منونکي دپاره زير:- دنيکانوخلقوانجام بيانيږي چه چاپه الله تعالى باندې ايمان راوړو ، رسول اللهﷺئې منلو،دشريعت لاندې ئې نيک کارونه کول،دهغوى دپاره جنتونه دى.چه په کښې قسما قسم نعمتونه،خونده ورخوراکونه،بهترينې جامې،ښه ښه سورلئ،پاکيزه اونوراني مخونووالا ښيبيانې دى.هلته دوى لره اودې نعمتونولره هميش والې دې کله زوال نشته،نه خوبه دوى مړه کيږي اونه به دا نعمتونه فناکيږي اونه به کميږي،اونه به خرابيږي.داخامخااويقيناً کيدونکي دى.ځکه چه الله تعالى فرمائيلي دى اودالله تعالى خبرې بدليږي نه،اودهغه وعدې ماتيږي نه.هغه کريم دې،منان دې، محسن دې، منعم دې،څه چه غواړي کولې شي.په هرڅيزباندې قادردې،عزيزدې.هرڅه دهغه په قبضه کښې دى.حکيم دې،هيڅ کار،هيڅ خبره ئې دحکمت نه خالي نه ده.هغه قران حکيم لره دمومنانودپاره هادى او شافى جوړکړې دې.اودبې ايمانوپه غوږونوباندې بوج دې.اوپه سترګوکښې ئې ړوندوالې دې. په بل ايت کښې دى(وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ)يعنى کوم قران چه مونږ نازل کړې دې هغه د مومنانو دپاره شفاء اورحمت دې.اوظالمان خوپه نقصان کښې زياتيږي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | بِغَيْرِ عَمَدٍ | تَرَوْنَهَا | وَاَلْقٰى | |
| هغه پيدا کړل | اسمانونه | بې دستنونه | چې تاسو وينئ هغه | اواوغورزول هغه | |
| هغه اسمانونه بې د ستنو اودرولي دى \| چې تاسو پخپله وينئ \| او په زمکه ئې د | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِي الْأَرْضِ | رَوَاسِيَ | أَنْ تَمِيدَ | بِكُمْ | وَبَثَّ | فِيهَا |
| په زمکه کښې | غرونه | چې اونۀ خوزیږي | په تاسو | او خوراه کړل هغه | په دې کښې |

غرونو میخونه لګولي دي | چې په تاسو نه جړقیږي | اوهر قسم ځناور ئې په کښې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ | وَأَنْزَلْنَا | مِنَ السَّمَاءِ | مَاءً | فَأَنْبَتْنَا |
| هر قسم ګرزنده ځناور | او نازلې کړې مونږه | داسمان نه | اوبه | پس زرغون کړل مونږه |

خواره کړي دي |............ او مونږ د اسمان نه اوبه راوورولې | او په زمکه کښې مو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيهَا | مِنْ كُلِّ زَوْجٍ | كَرِيمٍ۝ | هٰذَا خَلْقُ اللّٰهِ | | فَأَرُونِي |
| په هغې کښې | دهر قسم (ځيزونو) | ښوښونه | دا پيداوښت دالله دې | | پس اوښايئ ماته |

هر قسم ښه ځيزونه رازرغون کړي دي | دا خو دالله ﷻ جوړ کړي ځيزونه شول

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَاذَا | خَلَقَ | الَّذِينَ | مِنْ دُونِهٖ | بَلِ الظّٰلِمُونَ | فِي ضَلٰلٍ |
| چې کوم څيز | پيدا کړي دې | هغه کسانو | چې سوا دهغه نه دي | بلکه | دا ظالمان | په ګمراهئ |

نو دالله ﷻ نه سوا دوی (د دوی خدايانو) څه پيدا کړي دي | حقيقت دا ددې چې داخلق په ښکاره

مُّبِينٍ۝ع

ښکاره کښې دی |

ګمراهئ کښې دی |

**قوله تعالٰی:: خَلَقَ السَّمٰوٰتِ.**

**دزمکې اواسمان خالق الله تعالی دې**:- الله سبحانه وتعالی دخپل قدرت کامله بيان فرمائی چه دزمکې اواسمان اودټولومخلوقاتوخالق صرف هم هغه دې.اسمان هغۀ بې ستنواوچت کړې دې.اوبه واقعی کښې هم هيڅ ستنه نشته.ګودحضرت مجاهد m داهم قول دې چه ستنې مونږ ته په نظرنه راځی.ددې مسئلې پوره فيصله مادسوره ماندې په تفسيرکښې ليکلې ده.ددې وجې نه دلته ددوباره ونيلو ضرورت نشته.دزمکې دمضبوطتيادپاره اودخوزيدونه دبچ کيدودپاره هغۀ په دې باندې د غرونو ميخونه ټك وهلی دی.چه هغه تاسودزلزلې اوخوزيدونه بچ کړی.هم دغه شان قسماقسم اومختلف ساه لرونکی دې خالق حقيقی پيداکړی دی.چه ترننه پورې چادهغې شماراونه کړې شو.خپل خان خالق او خلاق بيانولونه پس اوس رازق اورزاق کيدل بيان فرمائی چه ددې اسمان نه ئې باران اوورولواوبه زمکه باندې ئې قسماقسم پيداوارزرغون کړل چه په ليدوکښې خوش نما،په خوراك کښې بې ضرره ، په نفع کښې ډيربهتر،دشعبی قول دې چه انسان هم دزمکې پيداواردې.جنتيان کريم دی او دوزخيان ليئم دی.دالله تعالی داټول مخلوق خوستاسويه وړاندې دې.اوس دچاچه تاسودهغۀ نه علاوه عبادت کوئ لږ شان اووايئ چه دهغوی مخلوق چرته دې؟چه نشته،نوهغوی خالق نه دی.اوکله چه خالق نه دی نومعبودان هم نه دی.بيادهغوی عبادت سخت ظلم اوبالکل بې انصافی ده.بې شکه دالله تعالی سره شريك ګرځونکې نه زيات ړوند ،کونړ،اوبې عقله،بې علمه،اوبې وقوف به نورڅوك وی؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا | لُقْمٰنَ | الْحِكْمَةَ | أَنِ اشْكُرْ | لِلّٰهِ |
| او ورکړې وه مونږ | لقمان ته | حکمت | چې شکر کوه | الله لره |

او بيشکه مونږ لقمان ته اوهوښيارتيا ورکړې وه (او وموئيل) چې دالله شکر کوه

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَنْ يَّشْكُرْ | فَاِنَّمَا يَشْكُرُ | لِنَفْسِهٖ | وَمَنْ كَفَرَ |
| او څوك چې شكر اوباسي | پس بيشكه هغه شكر اوباسي | دپاره دخان خپل | او چاچې كفر اوكړو |
| او څوك چې شكر كوي نو دخپل ځان دفائدې دپاره ئې دې او څوك چې ناشكري كوي نو | | | |
| فَاِنَّ اللّٰهَ | غَنِيٌّ | حَمِيْدٌ | |
| پس بيشكه الله | محتاجه نه دې | ستائيلې شوې دې | |
| الله ﷻ بې نيازه دې ستائيلې شوې دې | | | |

**قوله تعالىٰ: وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمٰنَ الْحِكْمَةَ**

**اياحضرت لقمان نبي وو**: پدې كښې دبزرګانواختلاف دې چه اياحضرت لقمان نبي وو يانه؟ اكثر حضرات فرمائي چه دې نبي نه وو،پرهيزګارولي اودالله تعالىٰ خوښ بزرګ بنده وو.دحضرت ابن عباس ﷛ روايت دې چه دې حبشي غلام وو.اوترکان وو.دحضرت جابر ﷛ چه كله سوال اوشو نو هغوي اوفرمائيل چه حضرت لقمان دلنډقدوالا اولوړې پوزې والا دغټوشونډووالا وو.سعيدبن مسيب فرمائي چه دې دمصراوسيدونكي حبشي وو.حكمت دوي ته وركړې شوې وو.خونبوت ورته ملاوشوې نه وو.دوي يوځل دتوررنګ يوحبشي غلام ته اوفرمائيل چه دخپل رنګ په وجه خپل ځان دچانه كم مه ګڼړه دري كسان چه دټولوخلقونه ښه وو،ددريواړورنګ توروو.حضرت بلال ﷛ چه دحضور ﷺ درسالت غلام وو.حضرت مهجع ﷛ چه دجناب فاروق اعظم ﷛ غلام وو.اوحضرت لقمان چه دحبشې نه به وو.

دحضرت خالدربعي قول دې چه حضرت لقمان كوم حبشي تركان وو يوه ورځ ده ته خپل مالك اووئيل چه بزه ذبح كړه.اوددې دوه بهترينې اوښې دغوښې ټوټې ماته راوړه.دة زړة اوژبه ورووړه. څو ورځې پس دهغة مالك بياورته هم دغه حكم وركړو.چه نن ددې په ټوله غوښه كښې چه كومه بدترينه اوخبيثه ټكړه وي هغه راوړه.دوي نن هم هغه دوه څيزونه ورووړل.مالك ترې تپوس اوكړوچه څه وجه ده چه كله مې درنه بهترينې ټوټې اوغوښتې نوهم دغه دې راوړې،اوكله چه مې درنه بدترينې اوغوښتې نوهم دې دغه راوړې.داڅه خبره ده؟دوي ورته اوفرمائيل چه كله دابنه وي نوددې نه بهترينه حصه بله په بدن كښې نشته.اوكله چه دابدې شي نوبيادټولونه بدترې هم دادي.دحضرت مجاهدقول دې چه حضرت لقمان نبي نه وو.نيك بنده وو.دتوررنګ غلام وو.دغټوغټوشونډووالا اودغټوغټوخپووالا وو.دبل بزرګ نه هم دغسې روايت دې چه په بني اسرائيلوكښې قاضي وو.بل قول دې چه دوي دحضرت داود ﷺ په زمانه كښې وو.يوځل دی په يومجلس كښې وعظ فرمائيلوچه يوشپونكي اوليدو نووې وئيل چه هغه نه ئې چه ماسره به دې په فلاني ځائې كښې بزې سرولې؟دوي ورته اوفرمائيل چه زة هم هغه يم.هغة ورته اووئيل چه بياتاته دامرتبه څنګه ملاوشوه؟وې فرمائيل درښتياووئيلوپه وجه،اوبې فائدې كارونوپريښودوپه وجه.غرض داچه هم داقسمه آثار دي چه دوي نبي نه وو.ليكن په دې كښې هم ددوي غلام كيدل بيان شوي دي.چه ثبوت دې ددې كارچه دې نبي نه وو.ځكه چه غلامي دنبوت خلاف ده.انبياء ﷺ به داوچت نسب والا اوداعلىٰ خاندانونووالا وو.

**د جمهورو قول دادې چې نبي نه وو**: ددې وجې نه دجمهوروبزرګانوقو ل دې چه حضرت لقمان نبي نه وو. اودحضرت عكرمه ﷛ نه مروي دی چه دې نبي وو.ليكن هم هله چه دسندنه ثابت شي.ليكن ددة په سند كښې جابربن يزيدجعفي دې چه ضعيف دې.والله اعلم.وائي چه حضرت لقمان حكيم ته يوكس اووئيل چه تة دنبي حسحاس غلام نه ئې؟دوي ورته اوفرمائيل يم.هغة ورته اووئيل چه تة شپونكې نه ئې؟دوي ورته اوفرمائيل چه اوزه يم.وې وئيل تة دتوررنګ والا نه ئې؟دوي ورته اوفرمائيل ظاهره ده زة

دتوررنګ والا یم.تهٔ راته اووائیه تهٔ دځه تپوس کول غواړې؟هغهٔ ورته اووئیل چه هم دغه چه بیاځه وجه ده چه ستامجلس ډك وی خلق ستادروازې ته راځی،اوستاخبرې په شوق سره اوری؟دوی ورته اوفرمائیل چه واوره روره کومې خبرې چه زهٔ تاته کوم په هغې عمل اوکړه نوتهٔ به هم زماپشان شې.سترګې دحراموځیزونونه بندې کړه.ژبه دبې هوده خبرونه منع کړه.حلال مال خوره،دشرمګاه حفاظت کوه،په ژبه رښتونې خبرې کوه،وعده پوره کوه،دمیلمه عزت کوه،دګاونډی خیال ساته،بې فائدې کارونه پرېږده، هم ددې خبروپه وجه ماته بزرګی ملاوشوې ده.

حضرت ابوالدرداءفرمائی چه حضرت لقمان دځه لوبې کورنۍ والا مالداراوزیات خاندان والا نه وو.خوپه هغهٔ کښې ډېرښه ښه عادتونه وو.هغه خوش اخلاقه،خاموش،غوراوفکرکونکی د ژور نظر والا، دورځې نه اودهٔ کیدونکې وو.دخلقوپه وړاندې به نې لاړې نه توکلې اونه به نې دخلقوپه وړاندې متیازې غسل وغیره کول،دفضول کارونونه به لرې لرې اوسیدو،خندل به ئې نه اوکوم کاربه ئې چه کولودحکمت نه به خالی نه وو.کوم وخت کښې چه ددهٔ اولادمړ شودهٔ بالکل اونه ژړل.هغه به بادشاهانواوامیرانوته ځکه ورتلوچه غوراوفکراوعبرت نصیحت حاصل کړی.هم ددې په وجه دوی نه بزرګی ملاوشوه،دحضرت قتادهؒ نه یوعجیبه روایت نقل دې چه دهٔ ته په نبوت اوحکمت قبلولوکښې اختیارورکړې شونودوی حکمت قبول کړو.شپه په شپه په دهٔ حکمت راووریدهٔ،اوددهٔ په رګ رګ کښې حکمت ډك کړې شو.سحرددهٔ خبرې اوعادتونه ټول حکیمانه شو.ددوی نه سوال اوشوچه تاسودنبوت په مقابله کښې حکمت څنګه اختیارکړو؟دوی جواب ورکړوچه که الله تعالی زهٔ نبی جوړکړې وې نوهغه بله خبره وه ممکنه وه چه منصب نبوت پوره کړې وې.خوچه کله ماته اختیارراکړې شونوزهٔ اووریدم چه چرته داسې اونه شی چه زهٔ دنبوت بوج اوچت نه کړې شم.ددې وجې نه ماحکمت خوښ کړو.ددې روایت یوراوی سعیدبن بشیردې په چاکښې چه ضعف دې،فالله اعلم.

**دلقمان حکمت څهٔ وو؟:** حضرت قتادهؒددې ایت په تفسیرکښې فرمائی چه دحکمت نه مراددااسلام پوهه ده.حضرت لقمان نبی نه وو،نه په هغهٔ وحی راتله،پس مرادترې پوهه،علم اوعبرت دې.مونږ هغهٔ نه خپل شکراداکولوحکم فرمائیلې وو،چه ماتاته کوم عقل اوعلم درکړې دې اوپه نورومې درته کومه بزرګی درکړې ده،په دې تهٔ زما شکر اداکړه، شکر ګزار په ماځه احسان نه کوی بلکه خپل خان سره ښیګړه کوی،څنګه چه په بل روایت کښې دی ﴿ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِاَنْفُسِهِمْ يَمْهَدُوْنَ ﴾ نیکۍ والا دخپل خان دپاره ښیګړې تیاروی،دلته فرمان دې چه که څوك ناشکری اوکړی نوالله تعالی ته دهغې ناشکرۍ څه ضررنه رسی،هغه دخپلوبندګانونه بې پرواه دې ټول دهغهٔ محتاج دی اوهغه دټولونه بې نیاز دې.که دټولې زمکې والا کافرشی نودهغهٔ څه کولې نه شی هغه دټولونه غنی دې اودهغهٔ نه سواڅوك معبودنشته،مونږ دهغهٔ نه علاوه دبل عبادت نه کوو

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَإِذْ | قَالَ | لُقْمٰنُ | لِابْنِهٖ |
| او کله چې | اووئیل | لقمان | خوئ خپل ته |

او ځه وخت چې لقمان خپل ځوئي ته دنصیحت په طور اووئیل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَهُوَ | يَعِظُهٗ | يٰبُنَيَّ | لَا تُشْرِكْ | بِاللّٰهِ | اِنَّ الشِّرْكَ |
| او هغه | نصیحت کوۀ هغه ته | اے خویه | شریك مهٔ پیدا کوه | دالله سره | بیشکه شرك |

چې ائې زما ځویه ته دالله ﷻ سره شریک مه جوړوه | ........................ بیشکه شرک ډیر

لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۳﴾ وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ ۚ

خامخا ظلم دي | لوئ | اووصيت (حکم) کړي دي مونږه | انسان ته | دمور اوپلار دهغه سره (په نيکئ کولو)

لوئي ظلم دي | اومونږ انسان ته دمور پلار سره د نيکئ ډير تاکيد کړي دي | (ځکه چي)

حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلٰى وَهْنٍ وَّفِصٰلُهُ

بار کړي ګورزووئ ده لره | مور دده | دکمزورئ سره | دپاسه دکمزوري | او پريکول دده دتی نه |

مور د ډيري کمزورئ په حالت کښي په خيټه کښي سنبال اوساتلو او بيا په دوه کاله کښي ئي دتی

فِيْ عَامَيْنِ أَنِ اشْكُرْ لِيْ وَلِوَالِدَيْكَ ؕ إِلَيَّ الْمَصِيْرُ ﴿۱۴﴾

په دوه کاله کښي دی | چي شکر اوباسه | زما | او دمور اوپلار ستا | خاص ماته دی راتلل ستاسو

نه پري کړو | نو بنده ته زما هم اودمورپلار هم شکر کوه | او ماته به (دحساب دپاره) راپيش کيږي

وَإِنْ جَاهَدٰكَ عَلٰى أَنْ تُشْرِكَ بِيْ مَا

او که زرو اولګوئ دي دواړو په تا | په دي خبره چي ته شريك جوړ کړه | زما سره | هغه |

او که چري دوئ دواړه دربانديٖ زور واچوی | چي ته ماسره بغير د څه دليل نه څوک شريک اومنه

لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ۙ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا

چي نه وی تالره | په هغي علم | پس خبره مه منه دهغوئ دواړو | او ملګرتيا کوه دهغوئ سره |

........ ........نو ته د هغوئ خبره مه منه | او په دنيا کښي هغوئ سره ښه سلوک کوه

فِي الدُّنْيَا مَعْرُوْفًا ۫ وَّاتَّبِعْ سَبِيْلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ۚ

په دنيا کښي | نيکه | او پيروی کوه | دلاري | دهغه چا | چي رجوع ئي کړی ده | ماته |

اودهغه چا په لاره روان اوسيږه | چي ماته رجوع کوی ........................

ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ

بيا خاص ماته دی | راتلل ستاسو | پس زه به خبرکړم تاسو | په هغه عملونو | چي وئ تاسو |

بيا ستاسو ټولو ماته واپس راتلل دی | نو زه به ستاسو دعملونو نه تاسوخبر کړم

تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۵﴾

چي کول به مو |

**قوله تعالى:: وَإِذْ قَالَ لُقْمٰنُ لِابْنِهٖ**

**دحضرت لقمان خپل ځوي ته نصيحت:-** حضرت لقمان چه خپل ځوی ته کوم نصيحت اووصيت کړي وو د هغي بيان کيږي.دي لقمان بن عنقاء بن سدون وو.دده دځوی نوم دسهيلي دبيان مطابق ثاران وو.الله تعالى دده ذکرپه ښه والی سره کړي دي.اوفرمائيلي ئي دی چه ده ته حکمت ورکړي شوي وو.ده چه کوم بهترين وعظ خپل ځوی ته کړي وواودفائدي والا،ضروری،اوښه نصيحتونه ئي هغه ته کړي وودهغي ذکر کيږي.ظاهرده چه انسان ته داولادنه زيات خوږ څيزبل څه نه وی،اوانسان خپل بهترين اوقيمتی څيزونه خپل اولادته ورکول غواړي.

**اول نصيحت. شرک مه کوه::** نودټولونه مخکښي ئي ورته دانصيحت اوکړوچه صرف دالله تعالى عبادت

کوه، اودهغهٔ سره څوك شريك مه ګرځوه، يادساته چه ددې نه زياته دبې حيايۍ اوبد کار بل هيڅ نه دی.
د حضرت عبدالله نه په صحيح بخاری کښې روايت دې چه کله ايت﴿ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ ﴾
الخ...نازل شونودرسول الله ﷺ په اصحابوباندې ډيره سخته راغله، اوهغوی حضوراکرم ﷺ ته عرض اوکړو
چه يارسول الله ﷺ! مونږ کښې هغه څوك دې چاچه هيڅ ګناه هډو کړې نه وی؟ او په آيت مبارك کښې دی
چې چا ايمان دظلم سره يوځائې نه کړو نو هم هغه په امن او په نيغه لار باندې.نو حضور ﷺ اوفرمائيل
چه دظلم نه مرادعامه ګناه نه ده.بلکه دظلم نه مراد هغه ظلم دې کوم چه حضرت لقمان خپل خوی ته
نصيحت کولو کښې فرمائيلې ووچه بچيه دالله تعالی سره څوك شريك مه ګرځوه دا ډيرلوی ظلم دی.

**دويم وصيت مور پلار سره ښهٔ سلوك کوه::** د دې اولنی نصيحت نه پس حضرت لقمان دويم وصيت کوی
اوهغه هم ددرجې اوتاکيدپه لحاظ سره واقعی داسې دې چه ددې اولنی وصيت سره يوځائې کړې
شی، يعنی دموريلارسره سلوك اواحسان کول، دجناب باری تعالی فرمان دې ﴿ وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ
وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ﴾.يعنی ستارب دافيصله کړې ده چه دهغهٔ نه علاوه تاسودبل چاعبادت مه کوئ
اودموريلارسره احسان اوښه سلوك کوئ.

په قران کريم کښې ددوې دواړوڅيزونوبيان عموماً يوځائې دې.دلته هم دغه شان دې.﴿وهن﴾معنی
مشقت، تکليف، ضعف، وغيره ده.يوتکليف خودحمل وی، کوم چه موربرداشت کوی، دحمل تکليف
اودرد هرچاته معلوم دې.بيادوکالوپورې ورته پئ ورکوی، اودهغهٔ په پرورش کښې لګياوی، چنانچه په
بل ايت کښې دی﴿ وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ ﴾ الخ يعنی کوم خلق چه خپل اولادته پوره پوره پئ
ورکول غواړی نودهغوی دپاره انتهائی ميعاددادې چه مياندې دې کامل دوه کالوپورې دغه
ماشومانوته خپل پئ ورکوی.

چونکه په يوبل ايت کښې فرمائيلې شوی دی﴿ وَحَمْلُهٗ وَفِصٰلُهٗ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا ﴾ يعنی دحمل ميعاد او د
پيوپرېښودو ټول دريرش مياشتې دی.نوځکه حضرت ابن عباس ﷺ اولويولويوامامانواستدلال کړې دې
چه دحمل دکم نه کم موده شپږ مياشتې ده.دمورداتکليف داولادپه وړاندې ددې وجې نه ظاهرولې شی
چه اولاددخپلې موردامهربانئ اووينی اوشکرګزاری ،احسان اواطاعت کوی.په بل ايت کښې فرمان
عالی شان دې ﴿ وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا ﴾ مونږ نه دعا غواړه اووايه چه زمارښتونې پروردګاره
ازمايه موريلارباندې داسې رحم اوکرم اوکړه څنګه چه په مايه ماشوم توب کښې هغوی رحم کرم
کولو، دلته ئې اوفرمائيل چه دخپل موريلاراحسان منداوسه، واوره چه اخری راتګ خوهم زماطرف ته
دې، کهٔ زماداخبره دې اومنله نوپوره جزابه درکړم.

**نبی کريم ﷺ چې کله معاذ ﷺ امير جوړولو نو هم دغه حکم يې ورته کړې وو::** په ابن ابی حاتم کښې دی چه کله
حضرت معاذ ﷺ رسول الله ﷺ خپل اميرجوړکړواووې ليږلونودوی چه هلته اورسيدل نودټولونه مخکښې
ئې په ولاړه خطبه اولوسته، چه په هغې کښې دالله تعالی دحمدوثناء نه پس اوفرمائيل ،زهٔ تاسو ته
درسول الله ﷺ دطرف نه راليږلې شوې يم سره ددې پيغام چه تاسوټول ديوالله عبادت کوئ، اودهغهٔ سره
څوك مه شريکوئ، زماخبرې منئ، زهٔ به ستاسوپه خيرخواهئ کښې هيڅ کوتاهی نه کومه.ټولولره واپس
دالله تعالی طرف ته تګ دې.پس ياخوبه جنت مکان شی اويا جهنم به داوسيدوځائې وی.بيابه دهلته نه
راوځئ اونه به مرګ راځی.بيافرمائی چه ستاسوموريلارتاسوته ددين اسلام نه علاوه دبل دين
دقبلولودپاره اووائی اګرکه هغوی خپل ټول طاقت خرچ کړی خبردار، تاسودهغوی خبره مه منئ
اوزماسره څوك مه شريکوئ، خوددې هم دامطلب نه دې چه دهغوی سره احسان اوښه سلوك کول
پريږدئ، ستاسوپه ذمه دنياوی حقونه دی هغه پوره کوئ.داسې خبرې دهغوی مه منئ بلکه دهغوی
تابعداری کوئ چه زماطرف ته رجوع کوی.واورئ تاسوټول به يوه ورځ واپس زماپه وړاندې راتلونکی

نې په هغه ورځ به زه تاسوته ستاسودټولواعمالوخبردرکړم.

د (فَلَا تُطِعۡهُمَا) **شانه نزول:**: دطبرانی په کتاب العشرة کښې دی چه حضرت سعدبن مالک رضی الله عنه فرمائی چه دا ایت زماپه باره کښې نازل شوې دې.مابه دخپل مورپلاره ډیرزیات خدمت کولو.اودهغوی پوره پوره اطاعت ګزاروم.کله چه ماته الله تعالی داسلام طرف ته هدایت راکړو،نوزمامورزمانه ډیره زیاته خفه شوه اووې وئیل چه خویه،دانوې دین تادکومې نه راوویستهٔ.واوره زهٔ تاته حکم درکوم چه ددې دین نه لاس اوباسه ګنی زهٔ به نه خوراک کوم اونه څښاك،اوهم دغسې اوږې به مړه شم.مااسلام پرینښووده، او زمامورخوراك څښاك بندکړو،اودڅلورواړوطرفونوبه ماپسې اوازونه شوچه دې دخپلې مور قاتل دې. زما زړهٔ ډیرزیات تنګ شواوخپلې مورته مې باربارااووئیل،خوشامندئ مې اوکړې،پوهه مې کړه،چه د الله دپاره دخپل ضدنه واوره،داخونامکنه ده چه زهٔ داربښتونې دین پریږدم.په دې بحث اوتکرارکښې زماپه موردرې ورځې لوږه تنده تیره شوه،اودهغې حالت ډیرزیات خراب شو.نوزهٔ هغې ته ورغلم اوماورته اووئیل چه زماموری ،زمابښې مورې واورهاتهٔ ماته دخپل ځان ته زیاته ګرانه نې،خوماته دخپل دین نه زیاته ګرانه نه نې،والله ستایونه که سل ساه ګانې شی اوبه دې لوږه تنده کښې یوه په یوه ټولې اوځی،نوهم به زه خپل ربښتونې دین پرینږدمه،پرینږدمه.اوس زمامورمایوسه شوه اوخوراك څښاك کول ئې شروع کړل.

يٰبُنَيَّ إِنَّهَآ إِن تَكُ مِثۡقَالَ حَبَّةٖ مِّنۡ خَرۡدَلٖ

| اے خویه | بیشکه چې یو خیز | که وی | په قدر ددانې | داوړې |

(لقمان اووئیل) که یو عمل د اوری د دانې هومره وړوکې وی | بیا هغه په یو کانړی کښې

فَتَكُن فِي صَخۡرَةٍ أَوۡ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ أَوۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ يَأۡتِ بِهَا ٱللَّهُۚ

پس وی هغه | په یو ګوټ کښې | ایا وی په اسمانونو کښې | یا وی په زمکه کښې | رابه ولی | هغه الله

دننه پټ پروت وی | ایا په اسمانونو کښې | ایا په زمکه کښې دننه پټ وی | نو الله ﷻ به ئې راحاضرکړی

إِنَّ ٱللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٞ ١٦ يَٰبُنَيَّ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ وَأۡمُرۡ

بیشکه الله | باریك لیدونکې | او بنه خبردار دې | اے خویه | قائم کړه مونځ | او حکم کوه |

بیشکه الله ﷻ ډیر باریک بین او باخبره دې | ائې زما خویه ! مونځ کوه اوخلقو ته

بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَٱنۡهَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَٱصۡبِرۡ عَلَىٰ مَآ أَصَابَكَۖ

په نیکئ سره | او منع کوه | دبدئ نه | او صبر کوه | په هغه مصیبت | چې اورسی تاته |

دنیکئ حکم ورکوه | اودبدئ نه خلق منع کوه | اوچې کوم مصیبت دربانديې راشی انو په هغې صبر کوه

إِنَّ ذَٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ ٱلۡأُمُورِ ١٧ وَلَا تُصَعِّرۡ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمۡشِ

بیشکه دا کار | دلوړو کارونو نه دې | اومهٔ اړوه مخ خپل | دخلقو نه | او مهٔ ګرزه |

بیشکه دا ډیر دهمت کار دې | او خلقو ته خپل مخ مه ګونجې کوه | اوپه زمکه باندې په تکبر سره

فِي ٱلۡأَرۡضِ مَرَحًاۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخۡتَالٖ فَخُورٖ ١٨

په زمکه کښې | په غرور سره | بیشکه الله | نه خوښوئ | هر غاوره | فخرکونکې |

مه ګرځه الله ﷻ غاوره فخر کونکی خلق نه خوښوی ..............................

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاقْصِدْ | فِيْ مَشْيِكَ | وَاغْضُضْ | مِنْ صَوْتِكَ ۚ | اِنَّ | اَنْكَرَ |
| او میانه روی کوه | په تلو خپلو کښي | او ښکته ساته | آواز خپل | بیشکه | ډیر ناکاره |

او په خپل تګ کښې اعتدال ساته او په خپل آواز کښې نرمی کوه ............بیشکه په

| | | |
|---|---|---|
| الْاَصْوَاتِ | لَصَوْتُ | الْحَمِيْرِ ⑲ |
| دآوازونونه | خامخا آواز | دخرونو دي |

آوازونو کښې خراب آواز دخر دی

**قوله تعالی:: يٰبُنَيَّ اِنَّهَآ اِنْ تَكُ**

**دایمان نه ډک دریم نصیحت:**۔دحضرت لقمان دانورنصیحتونه دی.چونکه ټول دحکمتونو نه ډک دی، نو قران ئې باربار بیانوی چه په دې عمل اوکړی.فرمانی چه بدی،خطا،ظلم،که داوری ددانې برابرهم وی،خواه که هرڅومره پټ وی،دقیامت په ورځ به الله تعالی هغه پیش کړی.په میزان کښې به کینبودې شی،اوبدله ئې ورکړې شی.په نیك کاربانديې جزااوپه بدکاربانديې سزا.څنګه چه فرمان دې (وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ) الخ...یعنی دقیامت په ورځ به دعدل تله کینبودې شی اوهریوته به بدله ورکوی. هیڅ ظلم به نه کیږی.په بل ایت کښې دی چه ذره برابرنیکی او ذره برابربدی به هریوکس اووینی.خواه که هغه نیکی یابدی چرته په کورکښې،ماړۍ کښې،قلعه کښې،دکانړی په سوری کښې،داسمانونوپه ګوټونوکښې،دزمکې دلاندې،چرته چه هم وی دالله تعالی نه پټه نه ده.هغه به مخامخ پیش کړی،هغه ډیردباریك علم والا دې.دوړوکی نه وړوکي څیزهم په هغه باندې ظاهردې.په توره شپه کښې که یومیږې روان وی نودهغهٔ دخپوداوازهم هغهٔ ته پته لګی.بعضوداهم جائزبخې دې چه(انها)کښې ضمیردشان اودقصې دې.اوهم په دې وجه هغوی(مثقال)په لام باندې پیش ونیل جائزکړی دی.خواولنۍ خبره زیاته بهتره ده.بعضې وائی (صخرة)نه مرادکانړې دې.چه داوَوه واړوزمکولاندې دې.ددې بعضې سندونه هم سدی ذکرکړی دی که صحیح ثابت شی.دبعضې صحابه کرامونه خودامروی دی.والله اعلم.ډیره ممکنه چه داهم دبنی اسرائیلونه نقل وی خودهغوی دکتابونوهیڅ خبره به مونږ نه رښتیاګنړواونه ددروغو.په ظاهره معلومیږی چه دوری ددانې برابرهم کوم عمل سپك وی،اوداسې پټ وی چه په کانړی کښې دننه وی.څنګه چه دمسنداحمدپه حدیث کښې دی رسول اللهﷺفرمانی چه په تاسوکښې که یوکس څه عمل اوکړی اودیوکانړی دسوری دننه وی اوهلته څوك وی هم نه،نه دروازه،نه کړکۍ،نه څه سورې،نوهم به الله تعالی هغه په خلقوباندې ظاهرکړی.خواه که هرعمل وی نیك یابد.

**څلورم نصیحت(اَقِمِ الصَّلٰوةَ):** بیافرمانی چه ځویه دمونځ خیال ساته.ددې دفرائضو،ددې دواجباتو، ارکانو اوقاتووغیره پوره پوره حفاظت کوه.دخپل وس مطابق دالله تعالی دخبروتبلیغ په خپلو اوبردو کښې کوه. د ښو خبرو د کولو دپاره اودخرابوکارونونه بچ کیدودپاره هرچاته وایه.اوچونکه دنیکۍ حکم اودبدۍ نه بچ کول،هغه څیز دې چه اکثرپه خلقوباندې بدلګی.دحق پرست انسان سره خلق دشمنی کوی.ددې وجې نه ئې ورسره اوفرمائیل چه دخلقودلاسه درته کوم تکلیف اومصیبت دراورسی په هغې صبرکوه،دالله تعالی په لاره کښې په حقیقت کښې برښده توره اوسیږه اودحق په لاره کښې دمصیبتونواوتکلیفونونه مهٔ ویریږه. دا ډیر دروند اودخوانانو کار دې.

**پنځم ، شپږم ، اووم نصیحت (وَاْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ):** بیافرمائی چه خپل مخ دخلقونه مهٔ ګرځوه اوهغوی سپك مه ګنړه.یاخپل خان دهغوی نه اوچت ګنړلوسره تکبرمه کوه.بلکه نرمی کوه،خوش خلقۍ سره خلقوسره ملاویږه،په خندا کښې خبره کوه.په حدیث مبارك کښې دی چه کهٔ دخپل مسلمان رورسره تهٔ په

رونړتندی اوخنداسره ملاوشي نوداهم ستانیکی ده.پرتوګ اولنګ دګیټونه لاندې مه ساته. دا تکبر او غرور دی.تکبراو غرور داالله تعالی سخت ناخوښه دي.حضرت لقمان هم خپل خوی ته دتکبرنه کولو وصیت کوی.چه چرته داسي نه وی چه داالله بندګان ته سپك اوګنړې اومخ ترې اوګرځوې. او د مسکینانو سره په خبرو کولو او شرمیږې. مخ چه دې ګرځولې وی اوخبرې کوې داهم په تکبرکښې داخل دی.ډېرپه اوچت اوازسره اورعب داب په اندازکښې خبرې اترې کول منع دی.(صعر)یوه بیماری ده چه داوښانوپه ستونوباندې ظاهرېږی یاپه سرکښې،چه دهغې په وجه دهغوی ستونه کاږه شی.پس متکبرکس ئې ددغې کوږ سټ والا سړی سره مشابه کړې دې.عرب عموماً دتکبرپه موقعه باندې دصعراستعمال کوی،اوداستعمال دهغوی په شعرونوکښې هم موجوددې.

اتم نصیحت (وَلَا تُصَعِّرْ):په زمکه باندې په نازاوغرورسره مه ګرځئ،داچال داالله تعالی ناخوښه دې.الله تعالی هغه کسان نه خوښوی چه په ځان منین،تکبرکونکی،سرکش، فخر او غرور کونکی وی.په بل ایت کښې دی( وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ الْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُولًا ) یعنی په زمکه په غرورسره مه ګرځه،نه ته زمکه شلولې شې اونه داسمان اوچت والی ته رسیدې شې،ددې ایت تفسیرهم هغه ځائې کښې تیرشوې دې.

مرح او تکبر څه ته وائی؟: دحضوراکرمﷺپه وړاندې یوځل د غرور ذکر راغې نوحضورﷺددې ډېرزیات مذمت اوفرمائیلو،وې فرمائیل چه په داسې خود پسندو او مغروره کسانوباندې الله تعالی غصه وی.په دې باندې یوصحابیؓاووئیل چه یارسول اللهﷺ،زه چه کپړې وینځم اوښه سپینې شی نوهغه زماډېرې خوښېږی اوزه هغې سره خوشحالیږم.هم دغه شان په څپلئ کښې مې ښه تسمه خوښېږی.دکوړې(چابك) ښانسته غلاف مې خوښېږی.نوحضورﷺته ورته اوفرمائیل چه داتکبرنه دې.تکبرهغه ته وائی چه ته حق سپك اوګنړې اوخلق سپك ګنړې،داروایت اوطریق ډېر اوږد مروی دې.اوپه دې کښې دحضرت ثابتؓ دانتقال اودوصیت ذکرهم دې.

لسم نصحیت(وَاقْصِدْ فِي مَشْيِكَ):اوپه درمیانه اندازکښې تګ کوه،نه ډېره په مزه مزه اونه دنازا انداز سره، اونه ډېرزرزرپه اوږدواوږدوقدمونوسره.

یوولسم نصیحت (وَاغْضُضْ مِن صَوْتِكَ):په خبروکښې لاپې مه کوه.اومه بې فائدې چغې سورې وهه، بد ترین اوازدخردې.چه په پوره زور بې فائدې چغې وهی.باوجوددې چه داالله تعالی په وړاندې خپله عاجزی ظاهروی.پس دې بدمثال ورکولوسره ئې پوهه کړوچه هسې چغې سورې وهل اوغصې کول حرام دی.رسول اللهﷺفرمائی چه دبدمثالونولاتق مونږ نه یو،خپل ورکړې شوې ځیزواپس اخستونکی داسې دې لکه سپې چه څه قې کړی اوواپس ئې اوځتی.په نسائی کښې ددې ایت په تفسیرکښې دی چه رسول اللهﷺاوفرمائیل چه کله دچرګ اذان واورئ نوداالله تعالی نه دهغه فضل غواړئ اوکله چه دخراوازواورئ نوداالله تعالی پناه غواړئ.ځکه چه هغه شیطان وینی،په یوروایت کښې دی چه دشپې. والله اعلم.

دحضرت لقمان نور اقوال زرین:- دحضرت لقمان دانصیحتونه ډېردنفع والا دی.ددې وجې نه قران کریم بیان فرمائیلی دی.ددوی نه نورډېرزیات حکیمانه خبرې اودوعظ ونصیحت کلمات مروی دی.دنمونې په طوراودستورمطابق مونږ ئې شان دلته بیانوو.

① په مسندکښې دحضورﷺدژبې مبارکې نه دحضرت لقمان داقول روایت دې چه کله الله تعالی ته یوځیزحواله کړې شی نوالله تبارك وتعالی دهغې حفاظت کوی.

② په بل کښې ددوی نه داقول هم مروی دې چه بناوټ نه بچ شه دادتورې شپې په شان ویرونکې ځیز دې.اوپه ورځ کښې دمذمت اوبدئ والا ځیزدې.

③ دوی خپل خوی ته داهم فرمائیلي وو،چه حکمت سره مسکین خلق هم بادشاهان جوړشی.
④ددوی فرمان دې چه کله یومجلس ته اورسې نواول داسلامې طریقې مطابق سلام کوه،بیاپه مجلس کښې یوطرف ته کښینه،که نورخلق خبرې نه کوی نوته هم خاموش کښینه.اوکه خلق دالله تعالی ذکرکوی نوته په هغوی کښې دټولونه زیاته حصه اخستلوکوشش کوه.اوکه ګپ شپ شروع کړی نوهغه مجلس پریږده.روایت دې چه دوی کله خپل خوی ته نصیحت کولودپاره کښیناستونوداوری نه ډکه یوه تهیلۍ نې دځان سره کیښوده.اودهرنصیحت نه پس یوه دانه به نې دهغې نه راویسته،تردې پورې چه تهیلۍ خالی شوه.نودوی اوفرمائیل چه خویه که دومره نصیحت ماغرته کړې وې نوهغه به هم ټوټې ټوټې شوې وو.چنانچه ددوی دځوی هم دغه شان حال شو.
**د حبشیانو فضیلت**:: رسول الله ﷺفرمائی چه حبشیان ساتئ خکه چه په دوی کښې درې کسان دجنت سرداران دی.لقمان حکیم،نجاشی رضی الله عنه،اوبلال موذن رضی الله عنه.(دتواضع اوانکسارئ بیان)حضرت لقمان خپل خوی ته ددې نصیحت کړې وو،اوابن ابی الدنیاپه دې مسئله باندې یومستقل کتاب لیکلې دې.مونږ دهغې نه اهمې خبرې دلته ذکرکوو.
**د تواضع اهمیت فضیلت**:: رسول الله ﷺفرمائی چه ببرسراودشلیدلو جامو والا چه دچالوې کورته رسیدې نه شی دالله تعالی په نزددهغوی دومره لویه مرتبه وی چه که هغوی په څه ځیزباندې دالله تعالی قسم اوخوری نوالله تعالی به هغه فوری پوره کړی.په بل حدیث کښې دی.چه براء بن مالك هم دداسې کسانونه دې .یوځل حضرت عمر رضی الله عنه حضرت معاذ رضی الله عنه دحضور ﷺ دقبرپه ژړا اولیدونوتپوس نې ترې اوکړو،نوجواب نې ورکړوچه ددې صاحب قبر ﷺنه یوحدیث مااوریدلې دې چه دهغې په یادولوسره ژاړم.مادحضور ﷺنه واوریدل،فرمائیل نې چه لږه شان ریاکاری هم شرك دې.الله تعالی هغه دوستان ساتی چه متقیان وی.کوم خلق چه په خلقوکښې پټ دی چه څه په شمارکښې نه دی که هغوی په یوه ډله کښې نه وی نوڅوك دهغوی حال تپوس نه کوی که راشی نوڅوك نې خیال نه ساتی خوددوی زړونه دهدایت ډیوې دی هغوی دهرې تیارې نه ځان بچ کوی اورنړاحاصلوی.حضور ﷺاکرم فرمائی چه دشلیدلو جاموخاوندان چه ذلیل شمارېږی دالله تعالی په دربارکښې داسې مقرب دی چه که په الله تعالی باندې قسم اوخوری نوالله تعالی نې پوره کوی.الله تعالی دوی ته دنیانه ده ورکړې خوکه ددوی دژبې نه دټول جنت سوال هم اوځی نوالله تعالی نې پوره کوی.
حضور ﷺفرمائی چه زماپه امت کښې داسې خلق هم شته چه که په تاسوکښې دچادرته هغه خلق راشی اویودینار(اشرفۍ) یودرهم(روپۍ) بلکه یوه فلوس(پیسه)هم اوغواړی نه تاسوبه نې ورنکړئ،خودالله تعالی هغوی داسې خوښ دی چه که هغوی دالله تعالی نه ټول جنتونه اوغواړی نوپروردګاربه هغوی ته ورکړی.او دنیا نه خوهغوی ته ورکوی اونه منع کوی.خکه چه داځه قابل قدرځیزنه دې.دوی په دوه خیرنوڅادروکښې اوسیږی اوکه په یوه موقعه قسم اوخوری نوچه کوم قسم هغوی اخوروالله تعالی هغه پوره کوی.
حضورنبی اکرم ﷺفرمائی چه په جنت کښې بادشاهان هغه خلق دی چه ګرد وړاودبرویختووالا دی. د خاورو اوشګونه ډك،که هغوی دمالدرانوکورونوته تلل اوغواړی نوهغوی ته اجازت نه ملاوېږی.که هغوی په یواوچت کورکښې رشته اوغواړی نودهغهٔ ځانې لورهغوی ته نه ملاوېږی.ددې مسکینانوسره د انصاف والا سلوك نه کیږی.ددوی حاجتونه اوخواهشات اومرادونه دپوره کیدونه مخکښې په خپله مړهٔ شی.او ارزوګانې نې په زړهٔ کښې پټې پاتې شی.دقیامت په ورخ به ورته دومره نورملاوشی چه که هغه تقسیم کړې شی نودټولې دنیادپاره به کافی شی.دحضرت عبدالله بن مبارك په شعرونوکښې دی چه ډېرخلق کوم چه په دنیاکښې سپك اوذلیل ګڼړلې شی صبادقیامت په ورخ به دتخت اوتاج والا،مال

دولت والا،عزت اوجلال والا جوړشوی وی.په باغونونهرونو، او د نعمتونوراحتونوکښې به مشغول وی. رسول کریمﷺفرمائی چه دجناب باری تعالی ارشاددې،چه زمادېولونه زيات محبوب ولی هغه دې چه مومن وی،دکم مال والا،کم جانونووالا،مونځ گذار،عبادت اواطاعت گذار،په پټه اوپه ښکاره فرمانبرداره وی،په خلقوکښې دهغوی عزت اووقارنه وی،دهغوی طرف ته گوتې نه اوچتيږی،اوهغوی په دې صابره وی،بیاحضورﷺخپل لاسونه مبارك اوخنډل اووې فرمائيل چه ددې نه پس ورته مرگ راشی ،دهغهٔ میراث ډيرکم وی اوپه هغې ژړاکونکی ډيرکم وی.فرمائی چه دالله تعالی دېولونه زيات محبوب خلق غريبان دی.چه سره دخپله دينه گرځی،کوم ځائې کښې ددين دکمزورې کيدوويره وی دهغه ځائې نه اوځی،دوی به دقيامت په ورځ دحضرت عيسیؑسره جمع وی.دحضرت فضيل بن عياضؒقول دې چه ماته داخبره رارسيدلې ده چه الله تعالی به دقيامت په ورځ خپل بنده ته اوفرمائی چه ايامايه تاباندې انعام اواکرام نه ووکړې؟اياماتاته درکړه نه وه کړې؟اياماستابدن پټ نه کړو؟ ايا ما دانه وکړې؟هغه نه ووکړې؟اياخلقوتاته عزت نه وودرکړې؟وغيره،نوکه کيدې شی ترکومې پورې چه د دې سوالونوموقعه کمه ملاوشی نو ښه ده.څه فائده ده چه خلق نې خوبئ بيان کړی؟اوکه هغوی نې مذمت هم اوکړی نوزمونږ به څه اوکړی؟زمونږ په نزدخوهغه سړې ډيرښه دې چاته چه خلق بد وائی، اودالله تعالی په نزدښه وی.

**د صحابه کرامو او علماء کرامو احوال:** ابن محيرز خوبه دعاکوله چه اې الله،زماشهرت دې نه وی، خليل بن احمد به په خپله دعاکښې ونيل چه اې الله،ته ماته په خپلوسترگوکښې اوچتوالې راکړه او ما په خپل نظرکښې حقيرکړه.اودخلقوپه نظرکښې ماپه درميانه درجه کښې اوساته. بيا" دشهرت" باب ترلو سره امام صاحب داحديث بيان کړې دې چه دانسان دپاره دومره بدی کافی ده چه خلق دهغهٔ ددينداړئ يادنياداړئ شهرت ورکړی،اودهغهٔ طرف ته گوتې اوچتيږی،اشارې شروع شی،بس په دې کښې چه راشی نوډيرخلق هلاك شی،مگرهغه څوك چه الله تعالی نې بچ کړی.واوړئ الله ستاسوشکلونوته نه گوری،بلکه هغه ستاسوعملونواوزړونوته گوری.دحضرت حسن هم دغه روايت مرسلاً مروی دې کله چه هغوی داروايت بيان کړو،نوچاورته اوونيل چه ستاطرف ته هم گوتې اوچتيږی،دوی ورته اوفرمائيل چه تهٔ پوهه نه شوې،دگوتې اوچتيدونه مراددينی بدعت يادنياوی فسق اوفجوردې.

دحضرت علیؓفرمان دې چه شهرت مهٔ حاصلوئ،خپل خانونه مهٔ اوچتوئ،چه په خلقوکښې موخبرې شروع شی،علم حاصل کړئ ليکن پټ کړئ،چپ اوسئ،چه سلامت پاتې شئ،نيکان خوشحاله ساتئ اودبدانونه نفرت کوئ،حضرت ابراهيم أدهم فرمائی چه دشهرت عوښتونکې دالله تعالی ولی نه وی،دحضرت ايوب فرمان دې چه څوك الله تعالی دوست جوړکړی نوهغه دخلقونه خپله درجه پټوی. محمدبن علاء فرمائی چه دالله تعالی دوستان خلق خپل ځانونه نه ظاهروی.دسماك بن سلمه ؒ قول دې چه دعام خلقوسره په ناسته پاسته اودوستانودزياتوالی نه پرهيزکوه.حضرت ابان بن عثمان فرمائی چه کهٔ خپل دين سلامت ساتل غواړې نودخلقوسره کم جان پېژان ساته.دحضرت دابوالعاليه معمول ووچه کله دهغهٔ په مجلس کښې ددريونه زيات کسان جمع شوې دی نوهغهٔ به هغوی پريښودل اوپه خپله به لاړو.حضرت طلحهؓکله خپل خواکښې دخلقوگڼړه اوليده نووې فرمائيل چه دطمع مچان اوداوړينگان.دحضرت حنظله نه خلق گيرچاپيره ولاړوونوحضرت عمرؓخپله کوړه راوچته کړه اووې فرمائيل چه تابع ذلت اومبتوع فتنه ده.دحضرت ابن مسعودؓسره چه خلق روان شونوهغوی اوفرمائيل چه کهٔ زماپټې خبرې په تاسوښکاره شی نوپه تاسوکښې به دوه کسانو هم ماپسې شاته تگ نه خوښولو.دحمادبن زيدؓښوينداده چه کله به مونږ په مجلس کښې دچاپه خواکښې تيريدواوزمونږ سره به ايوب وو،نوخلقوبه سلام کولو،اوهغهٔ به په سختئ سره جواب ورکولو،پس داپونعمت وو،دوی به اوږدقميص اوغوستلو،په دې باندې ورته خلقواوونيل نودوی ورته جواب ورکړوچه په تيره شوې زمانه

کښې دادشهرت ځیزوو.خواوس ددې شهرت ددې په اوچتولو کښې دې.یوځل دوی خپلې نوې په مسنون رنګ کښې رنګ کړې،خوورځې ئې په پسر کړې اوبیائې کوزې کړې اووې فرمائیل چه ما اولیدل چه عامو خلقو دانه پسرولی.دحضرت ابراهیم نحقی قول دې چه مه خوداسې لباس اچوه چه خلق درته ګوته نیسی، اونه دکمې درجې اغونده چه خلق درته په سپك نظرګوری.ثوریm فرمائی چه دعامو بزرګانوهم دغه معمول وو،چه نه خودوی ډیره قیمتی کپړه اغوسته،اونه بالکل بیکاره . د ابوقلابه خواکښې یوکس ډیرپه بهترین اوشهرت والا لباس کښې راغې نوهغوی ورته اوفرمائیل چه دې اوازکولووالا خرنه بچ شئ.حضرت حسن فرمائی چه بعضې خلقوپه زړونوکښې تکبرډك کړې دې، اوپه ظاهری لباس کښې تواضع اختیارکړې دې.ګویاڅادریودروندستېك دې.دحضرت موسی ﷺ مقوله ده چه هغوی ﷺبنی اسرائیلوته اوفرمائیل چه زماپه وړاندې خوددرویشانوپه جامه کښې راغلی نې حالاتکه ستاسوزړونه دلیوانوپه شان دی.واورئ جامې خواه که دبادشاه په شان واغوندئ خوزړه دالله تعالی دویرې نه نرم ساتئ(دخواخلاقوبیان)حضورﷺ دټولونه دخواخلاقووالا وو.دحضورﷺ نه سوال اوشو چه کوم یومومن بهتردې؟وې فرمائیل دټولونه خو اخلاقو والا. دحضورﷺفرمان دې چه باوجود کم اعمالوصرف دخواخلاقوپه وجه انسان دلوئې نه لوئې درجې اودجنت اعلی منزلونه حاصلوی .او باوجود دډیرونیکوصرف دبدو اخلاقوپه چه دجهنم دټولونه لاندې حصې ته لاړشی.فرمائی چه په خو اخلاقوکښې ددنیااواخرت ښیګړه ده.فرمائی چه انسان دخپلو خو اخلاقوپه وجه دشپې دقیام کونکو او ورځې روژې نیونکودرجې بیاموмی.دحضوراکرمﷺنه سوال اوشوچه جنت ته داخلیدودپاره عام وجه څه ده؟وې فرمائیل چه دالله تعالی ویره اوداخلاقوښه والې.تپوس اوشوچه عام طورسره کوم څیزجهنم ته بوتلونکې دې؟وې فرمائیل دوه سوری څیزونه،یعنی خوله،اوشرمګاه.یوځل دیوځواعرابیانوپه دې تپوس باندې چه انسان ته دټولونه ښه عطیه څه ملاوشوې ده؟وې فرمائیل چه څوك دټولونه خو اخلاقو والا وی.فرمائی چه څنګه مجاهدڅوك چه دالله تعالی په لاره کښې جهادکوی سحرماښام ورته اجر ملاویږی هم دغه شان په ښواخلاقوباندې الله تعالی ثواب ورکوی.ارشاددې چه په تاسوکښې ماته زیات محبوب اودټولونه زیات نزدې هغه کس دې چه دټولونه ښواخلاقووالا وی.زماپه نزددټولونه زیات دبغض اونفرت قابل اودټولونه زیات زمانه لرې دجنت په منزل کښې هغه دې چه بداخلاقه او بدزبانه وی.فرمائی چه کامل ایمانداردښواخلاقووالا دی.چه دهریوسره په محبت اوسلوك سره ملاویږی.ارشاددې چه دچاپیدائش اواخلاق ښه دی هغه به الله تعالی دجهنم خوراك نه جوړوی .ارشاد دې چه دوه خصلتونه په مومن کښې نه رایوځائې کیږی.بخل اوبدخلقی.فرمائی چه بدخلقئ نه زیاته بله بده ګناه نشته.څکه چه بداخلاقه دیوې نه یوې لوئې ګناه کښې اخته کیږی.

د حضوراکرمﷺارشاددې چه دالله تعالی په نزددبداخلاقئ نه بله لویه ګناه نشته.په ښواخلاقوسره ګناهونه معاف کیږی.بداخلاقی نیك عملونه بربادوی.څنګه چه سرکه شهد خرابوی. حضوراکرم ﷺ فرمائی چه غلام اخستلوسره غلامان نه زیاتیږی ښوپه خوش اخلاقئ سره ډیرخلق ستامنونکی اوتاسره محبت کونکی کیدې شی.دامام محمدبن سیرین قول دې چه ښه اخلاق ددین مرسته ده.

**دتکبردمذمت بیان:**-حضورﷺفرمائی چه هغه به جنت ته نه خی دچاپه زړه کښې داوری برابرتکبروی.هغه به پرمخ دوزخ ته خی.ارشاددې چه انسان په خپل غروراوخودپسندئ کښې زیاتیږی اودالله تعالی په نزدپه جبارینوکښې اولیکلې شی .بیا د سرکشانوپه عذاب کښې ګرفتارشی.امام مالك بن دینارm فرمائی چه یوه ورځ حضرت سلیمان بن داؤدﷺپه خپل تخت باندې ناست وو.ددوی په درباریانوکښې دغه وخت کښې دوه لکه انسانان اودوه لکه پیریان وو.دوی تراسمان پورې اورسولې شوتردې پورې چه دفرښتودتسبیح اوازونه ئې تر غوږو شو.اوزمکې پورې راوستې شو.تردې پورې چه دسمندرپه اوبو باندې ددوی خپې لمدې شوې.بیاهاتف غیبی ورته اوازاوکړوچه که دده په زړه کښې داوری دداني

برابرهم تکبروې نوچه خومره اوچت تلې وو نودهغې نه زيات به خښ کړې شوې وو.حضرت ابوبکر صديق په خپله خطبه کښې دانسان دپيدائش بيان فرمانيلوکښې اوفرمائيل چه دې د دوو کسانو د تشومتيازودخائې نه راوخې.په داسې شان کښې ئې بيان کړوچه اوريدونکوترې کرکه اوکړه.دامام شعبي قول دې چه چادوه کسان قتل کړل هغه ډيرلوې سرکش اوجباردې.بياهغوی داايت اولوستلو. ﴿اَتُرِيْدُ اَنْ تَقْتُلَنِيْ كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًا بِالْاَمْسِ ۗ اِنْ تُرِيْدُ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ جَبَّارًا فِي الْاَرْضِ﴾ ايا ته ماقتلول غواړې؟څنګه چه پرون تايوکس قتل کړې وو ،ستااراده په په دنياکښې دسرکش اوجباريه شان داوسيدو معلوميږی. د حضرت حسن ويناه ده چه هغه انسان کوم دورخې دوه ځل خپله ګندګی په خپلو لاسونو باندې وينځی هغه په څه وجه تکبرکوی.اودهغهٔ وصف په خپل ځان کښې پيداکول غواړی چاچه اسمانونه پيداکړی دی.په خپله قبضه کښې ئې ساتلی دی.دضحاك بن سفيان نه ددنيامثال په هغه څيزسره ورکول نقل دی چه دانسان نه اوخی.امام محمدبن حسين بن علی فرمائی چه په کوم زړهٔ کښې تکبرلوې والې وی،هم هغومره په هغهٔ کښې عقل کميږی.يونس بن عبيد فرمائی چه دسجدې سره تکبراوتوحيدسره نفاق يوځائې کيدې نه شی.بنی اميه به په وهلووهلوسره خپل اولادته په تکبرسره دتلوچل ښودلو،حضرت عمربن عبدالعزيز ته يوځل ددوی دخلافت نه مخکښې تکبرسره په تلوچه حضرت طاوس اوليدونويه ترخ کښې يوچوکه اوهلواوې فرمائيل چه داچال دهغهٔ دې دچاخيټه چه دګندنه ډکه ده.حضرت عمر ډير زيات شرمنده شواووې وئيل چه معافی غواړم مونږ ته په وهلووهلوسره داسې تګ چل ښودلې شوې دې.

**دفخراوتکبردمذمت بيان**:- رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم په فخراوغرورسره خپلې جامې لاندې کړی اوځان پسې ئې راکاږی نوالله تعالی به دقيامت په ورځ هغهٔ ته درحمت په نظرنه ګوری.فرمائی چه دهغهٔ طرف ته به الله تعالی نظرنه اچوی،چه خپل لنګ ښکته ساتی.يوکس دوه بهترين خادرونه دځان نه تاوکړې وواويه فخراوغرورسره روان وو،چه الله تعالی هغه په زمکه کښې خښ کړو،اوهغه به ترقيامته پورې خښيږی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلَمْ تَرَوْا | اَنَّ اللّٰهَ | سَخَّرَ | | |
| آيا نهٔ وينئ تاسو | چی بيشکه الله | تابع کړی دی | | |
| آيا تاسو دا نه وينئ چې الله ﷻ داسمانونو | | | | |
| لَكُمْ | مَّا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي الْاَرْضِ |
| ستاسو دپاره | هغه څيزونه | چی په اسمانونو کښې دی | او هغه | چی په زمکه کښې دی |
| او دزمکې ټول څيزونه ستاسو په خدمت کښې لګيا کړی دی | | | | |
| وَاَسْبَغَ | عَلَيْكُمْ | نِعَمَهٗ | ظَاهِرَةً | وَّبَاطِنَةً ۭ وَمِنَ النَّاسِ |
| او پوره کړی دی الله | په تاسو باندې | نعمتونه خپل | ښکاره | او پټ \| او څينی دخلقو نه |
| اوتاسو ته ئې خپل ښکاره او پټ نعمتونه درکړی دی \| اوبعضې خلق داسې دی | | | | |
| مَنْ | يُّجَادِلُ | فِي اللّٰهِ | بِغَيْرِ عِلْمٍ | وَّلَا هُدًى |
| هغه څوک دی | چی جګړی کوی | په باره داالله کښې | بی دعلم نه | او بې داهدايت نه |
| چې داالله ﷻ په باره کښې بغير دڅه واقفيت نه اوبغير د څه دليل نه اوبغير د يوروښانه | | | | |

وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيۡرٍ ۝ وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمُ اتَّبِعُوۡا مَآ

او بې دكتاب روښانه نه | او كله چې | اوونيلې شي | دوئ ته | چې پيروي اوكړئ | دهغه (كتاب) |
كتاب نه (تاسره) جګړې كوي اهر كله چې ورته اوونيلې شي چې د هغه حكمونو تابعداري كوئ

اَنۡزَلَ اللّٰهُ قَالُوۡا بَلۡ نَتَّبِعُ مَا وَجَدۡنَا

چې نازل كړې دي الله | نو وائي دوئ | بلكه | مونږه پيروي كوو | دهغه څيز | چې موندلې دي مونږه
چې الله ﷻ نازل كړې دي| نو داووائي چې نه مونږ خو پۀ هغه لار روان يو | چې مونږ پرې

عَلَيۡهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوۡ كَانَ الشَّيۡطٰنُ يَدۡعُوۡهُمۡ اِلٰى عَذَابِ

په هغې باندې| پلاران زمونږه | ايا اګر كه وي | شيطان | چې رابلي دوئ | عذاب |
خپل مورپلار روان موندلي دي | اګر كه په دغه لار باندې ئې شيطان د دوزخ

السَّعِيۡرِ ۝ وَمَنۡ يُّسۡلِمۡ وَجۡهَهٗۤ اِلَى اللّٰهِ وَهُوَ مُحۡسِنٌ

دوور ته | او هغه څوك | چې اوسپاري | خان خپل | الله ته | او هغه وئ | نيك عمله انسان
انګار ته راولي| اوڅوك چې خپل مخ الله ﷻ ته اوسپاري |او په اخلاص سره نيكي كوي

فَقَدِ اسۡتَمۡسَكَ بِالۡعُرۡوَةِ الۡوُثۡقٰى ؕ وَاِلَى اللّٰهِ عَاقِبَةُ الۡاُمُوۡرِ ۝

په حقيقت كښې هغه اونيوله | كړئ محكمه | او خاص الله ته | خاتمه ده | دكارونو |
نو هغه كړئ مضبوطه اونيوله| او اخر دټولو كارونو انجام الله ﷻ سره دي د.

وَمَنۡ كَفَرَ فَلَا يَحۡزُنۡكَ كُفۡرُهٗ ؕ اِلَيۡنَا مَرۡجِعُهُمۡ

اوهغه څوك | چې كفر ئې اوكړو | پس غمژن دنۀ كړي تا | كفر دهغه |خاص مونږ ته |واپس راتلل دي ددوئ
او چا چې كفر غوره كړو| نو ته دهغوئ دكفر په وجه غم مه كوه | مونږ ته به دوئ ټول واپس كيږي

فَنُنَبِّئُهُمۡ بِمَا عَمِلُوۡا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيۡمٌ

پس خبر به كړو مونږ دوئ لره | په هغه عملونو | چې كړي دي دوئ | بيشكه الله| ښه عالم دي
نومونږ به ورته ټول كارونه په ګوته كړو| بيشكه الله ﷻ ته دزړونو رازونه ښه

بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ ۝ نُمَتِّعُهُمۡ قَلِيۡلًا ثُمَّ نَضۡطَرُّهُمۡ

په خبرو دسينو باندې | مونږ نفع وركوو دوئ ته | لره | بيا به خه راكاږو مونږ دوئ
معلوم دي | مونږ دوی ته لږ شان مهلت وركوو | اوبيا به ئې يو سخت

اِلٰى عَذَابٍ غَلِيۡظٍ ۝

عذاب سخت ته |
عذاب طرفته راكاږو|

**قوله تعالي:: اَلَمۡ تَرَوۡا اَنَّ اللّٰهَ**

**دالله تعالى دخپلونعمتونواظهار:**-الله تبارك وتعالى دخپلونعمتونواظهارفرمائي چه ګورئ داسمان ستورى ستاسودپاره په كاركښې مشغول دی.پرقيدوسره تاسوته رنړادرسوی. وريځې،باران، ږلۍ، خشكې تول

ستاسودګټې خیزونه دی.په خپله اسمان ستاسودپاره محفوظ اومضبوط چت دې.دزمکې نهرونه، چینې، سیندونه، سمندر، اونې، پټی، میوې، ګلونه، داټول نعمتونه هم هغهٔ درکړی دی.بیاددې ظاهري بې شماره نعمتونو علاوه باطني بې شمیره نعمتونه هم هغهٔ تاسوته درکړی دی.مثلاً د رسولانو درلیږل، دکتابونو نازلول، دشك اوشبه وغیره دزړونونه لرې کول وغیره، دومره ډیرلوې اودومره بې شمیره نعمتونه چه چادرکړی دی حق خوداووچه دهغهٔ په ذات ټول په ټوله ایمان راوړې وی، خو افسوس، چه ډیرخلق تراوسه پورې دالله تعالی په باره کښې په شك کښې پراتهٔ دی.اوصرف دجهالت او ضلالت نه بغیرڅه سنداودلیل ټینګ ولاړدی.کله چه دوی ته اووئیلې شی چه دالله تعالی دنازل کړې شوې وحی اتباع کوئ نوډیرپه بې حیائې سره جواب ورکوی چه مونږ خوبه دخپلومشرانوپه نقش قدم باندې ځو،اګرکه ددوی پلارنیکهٔ بې عقله اوبې لارې وو، دشیطان پهٔ جال کښې راګیرشوی دی. او د هغهٔ دوی دجهنم په لارروان کړی دی.داووددوی مشران اودادی ددوی خلاف.

**قوله تعالی:: وَمَنْ يُّسْلِمْ وَجْهَهٗۤ اِلَى اللّٰهِ**

**دالله تعالی فرمانبرداره دالله په حفاظت کښې دې:-** فرمائی چه څوك په خپل عمل کښې اخلاص پیدا کړی، چه دالله تعالی رښتونې فرمانبرداره جوړشی، اوشریعت تابعدارشی، دالله تعالی په حکمونو باندې عمل کوی، دالله تعالی دمنع کړې شوې کارونونه منع شی.هغهٔ مضبوط لیکل اخستې دی، ګویادالله تعالی وعده ئې اخستې ده، چه هغوی دعذابونونه خلاص دی.دکارونوانجام دالله تعالی په لاس کښې دې.اې خوږه پیغمبرهﷺادکافرانوپه کفرباندې تهٔ خفه کیږه مهٔ، دالله تعالی تقدیرهم دغه شان جاری شوې دې، دټولواپس تلل دالله تعالی طرف دی.هغهٔ وخت به داعمالوبدله ملاویږی، دهغهٔ الله تعالی نه هیڅ خبره پټه نه ده، په دنیاکښې دې مزې اوکړی، بیابه دوی دعذابونوې وسی تیروی، چه ډیرزیات سخت اوډیرویرونکې دې، څنګه چه په بل ایت کښې دی.﴿ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ ﴾ په الله تعالی باندې دروغ ویونکی دفلاح نه محرومه پاتی شی.ددنیافائده خوجداخیزدې.خومونږ لره د راتلو نه پس دخپل کفربه سخته سزاتیروی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَئِنْ | سَاَلْتَهُمْ | مَّنْ خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ |
| او که چرې | تهٔ تپوس اوکړې ددوئ نه | چې چا پیدا کړی دی | اسمانونه |
| او که ته ترې نه تپوس اوکړې چې دا آسمانونه او زمکه چا پیدا کړدی دی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْاَرْضَ | لَيَقُوْلُنَّ | اللّٰهُ ؕ | قُلِ | الْحَمْدُ لِلّٰهِ ؕ | بَلْ | اَكْثَرُهُمْ |
| او زمکه | نو ضرور به اووائی | چې الله | ورته اووایه | چې ثناالله لره ده | بلکه | اکثر ددوئ |
| نو جواب کښې به اووائی چې الله ﷻ نو ته ورته اووایه چې ټول تعریفونه الله ﷻ لره دی خو په دوئ کښې | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ | لِلّٰهِ | مَا | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ؕ |
| نهٔ پوهیږی | الله لره دی | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دی | او په زمکه کښې دی |
| زیات خلق نه پوهیږی \| په زمکه او آسمانونو کښې چه څه دی هرڅه د الله ﷻ ملکیت دې | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ | هُوَ الْغَنِيُّ | الْحَمِيْدُ ۝ | |
| بیشکه الله امحتاجه نهٔ دې استائیلې شوې دې | | | |
| بیشکه الله ﷻ بې نیازه ستائیلې شوې دې | | | |

**قوله تعالی:: وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ**

**کله چه خالق الله تعالی دی نومعبودولې نه دې:-** الله تعالی بیان فرمانی چه دامشرکان داخبره منی چه د ټولو خالق یواځې یوالله تعالی دې.بیاهم دنوروعبادت کوی.حالانکه دهغوی په باره کښې ورته په خپله پته ده چه داداللّٰه تعالی پیداکړی شوی دی.اودهغهٔ ماتحت دی.کهٔ ددوی نه تپوس اوکړې شی چه خالق څوك دې؟نوددوی جواب بالکل ربښتونې وی چه الله تعالی! نوورته اووایه چه دالله تعالی شکردې چه تاسودومره اقرارخوکوئ.خبره داده چه اکثرمشرکان بې علمه دی.دزمکې اواسمان هرروکې اولوی څیزدالله تعالی پیداکړې شوې دې اوهم دهغهٔ ملکیت دې.هغه دټولونه بې نیازه دې.اوټول دهغهٔ محتاج دی.هم هغهٔ قابل دحمددې،هم هغه خوبیانووالا دې.په پیداکولوکښې هم اوپه احکام مقررولو کښې هم هغه دتعریف قابل دې.

وَلَوْ | اَنَّ مَا | فِي الْاَرْضِ
|او که چری |هغه ټول څیزونه|چی په زمکه کښی دی
| اوکه دزمکې په مخ باندې چې څومره ونې دی

مِنْ شَجَرَةٍ | اَقْلَامٌ | وَّالْبَحْرُ | يَمُدُّهٗ
د ونو نه | شی قلمونه | او دریاب شی (سیاهی) | چی امداد اوکړی دهغې سره
قلمونه شی | او سمندر ئې سیاهی جوړه شی | اوددې د مدد دپاره

مِنْ بَعْدِهٖ | سَبْعَةُ اَبْحُرٍ | مَّا نَفِدَتْ | كَلِمٰتُ اللّٰهِ ؕ
روستو دختمیدو دهغې نه | اوه دریابونه نور | نو ختمې به نهٔ شی | کلمې دالله (دلیکلو نه)
اووهٔ سمندرونه نور راشی |............... نوبیا به هم دالله ﷻ صفات ختم نشی

اِنَّ اللّٰهَ | عَزِيْزٌ | حَكِيْمٌ ۝ | مَا خَلْقُكُمْ | وَلَا بَعْثُكُمْ
بیشکه الله | غالب دې | دحکمت خاوند دې |نهٔ دی پیداکول ستاسو|اونهٔ دوباره ژوندی کول ستاسو
بیشکه الله غالب او صاحب د حکمت دې |ستاسو په اول خل پیداکول اوبیا دوباره ژوندی کول

اِلَّا | كَنَفْسٍ | وَّاحِدَةٍ ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | سَمِيْعٌ | بَصِيْرٌ ۝
مګر دی | پشان دنفس | یو | بیشکه الله | هر څه اوریدونکې | هر څه لیدونکې دې
بیخی دیو سړی د راپیداکولو پشان دی | الله ﷻ هره خبره آوری او هر عمل وینی ګور ی

**قوله تعالی:: وَلَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ**

**دالله تعالی دتعریف نه قلم اوقرطاس عاجزدی:-** الله رب العالمین خپل عزت، کبریائی، بزرګی، جلالت، او شان بیان فرمائی،خپل پاك صفتونه،خپل اوچت نوم،اوبې شمیره کلمات بیان فرمائی،چه هغهٔ نه څوك شمیرلې شی اونه دهغې احاطه کولې شی.اونه دهغې حقیقت څوك بیامونډې شی. سیدالبشر خاتم النبیین ﷺ به فرمائیل"لااحصی ثناء علیك انت كما اثنيت على نفسك" اې الله!زهٔ ستا دنعمتونو دومره شمیره نه شم کولې څومره چه تابیان فرمائیلی دی.پس دلته جناب باری تعالی ارشادفرمائی چه کهٔ د ټولې زمکې ټولې ونې قلمونه جوړشی،اوټول سمندرونه سیاهی جوړه شی،اوددې سره اوۀ سمندرونه نور هم یوځائې کړې شی اودالله تعالی دعظمت اوصفات،جلالت اوبزرګئ،کلمات لیکل شروع

کړی،نوداټول قلمونه به اوسولیږی،ختم به شی،ټولې سیاهۍ به ټول په ټوله ختمې شی خودالله تعالی وحده لاشریك له تعریفونه به ختم نه شی.دامۀ ګنړۍ چه داوُونه زیات سمندرونه وی نودالله تعالی پوره کلماتو لیکلودپاره به کافی شی. نه، داشمیره خودزیات والی دخودنې دپاره ده.اونه دې داهم اوګنړلې شی چه اوُوه سمندرونه موجوددی.اوهغوی دعالم نه راچاپیره دی.البته دبنی اسرائیلوداوُوسمندرونوپه باره کښې داسې روایتونه دی لیکن نه خوهغې ته ربښتونې وئیلې کیدې شې اونه هغه دروغ ګنړلې کیدې شی.اوچه کوم مونږ بیان کړی دی،ددې تائیدپه دې ایت کښې دې .﴿ قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا ﴾ الخ...
یعنی که سمندرسیاهی جوړه شی اودالله تعالی کلمات لیکل شروع شی نودهغۀ ربانی کلماتو ختمیدونه مخکښې به سمندرختم شی.اګرکۀ هم دغه شان بل سمندردۀ مددکښې راوړې.پس دلته ترې هم مرادصرف یوهم دغه شان سمندرراوړل نه دی بلکه هم دهغې په شان یوبل اوبیاهم هغه شان یوبل،اوبیابل،غرض داچه کۀ هرڅومره راوستې شی خودالله تعالی خبرې ختمیدې نه شی.حسن بصری فرمائی چه که الله تعالی لیکل شروع کړی چه زماداامر،زماداامر،نوټول قلمونه به مات شی اوډټولوسمندرونواوبۀ به ختمې شی.مشرکانوبه وئیل چه داکلام به اوس ختم شی،دکوم ردچه په دې ایت کښې دې،چه نه به درب تعالی عجائبات ختم شی او نۀ دهغۀ دحکمت انتهاء شته،اونه دهغۀ دصفت اوعلم اخره شته.دټولوبندګانوعلم دالله تعالی دعلم په مقابله کښې داسې دې چه دسمندرپه مقابله کښې یوه قطره.دالله تعالی خُبرې فناکیږی نۀ.اونۀ دهغې څوك ادراك کولې شی.مونږ چه هرڅنګه دهغۀ تعریفونه اوکړوهغه دهغې نه سوادی.

**دیهودیانو سوال در رسول کریم ﷺ جواب:** دیهودوعالمانوپه مدینه منوره کښې رسول الله ﷺته وئیلې وو چه داتۀ چه په قران کښې لولې،﴿ وَمَآ أُوتِيتُم مِّنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ یعنی تاسوته ډیرکم علم درکړې شوې دې.ددې نه څه مراددې،مونږ یاستاسوقوم.حضور ﷺورته اوفرمائیل اوټول.هغوی ورته اووئیل چه بیابه تۀ دکلام الله ددې ایت څه کوې،چرته چه فرمان دې چه په توراة کښې دهرڅیزبیان دې. حضور ﷺ اوفرمائیل، واورئ هغه تاسوسره چه هرڅه دی هغه ټول دالله تعالی دکلمات په مقابله کښې ډیرکم دی.ستاسوچه په څومره ګذاره کیده الله تعالی هم هغومره نازل کړل.په دې باندې داایت نازل شوخوددې نه معلومیږی چه داایت مدنی ېکاردې،حالاتکه مشهوره داده چه داایت مکی دې.والله اعلم.الله تعالی په هر څیز باندې غالب دې.تمام څیزونه دهغۀ په وړاندې پست اوعاجزه دی.څوك دهغۀ دارادې خلاف کولې نه شی.هغۀ په خپلوافعالو،اقوالو، شریعت، حکمت اوپه ټولوصفتونوکښې په ټولوباندې اعلی په ټولو باندې غالب اوقهاردې.

**قوله تعالی:: مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ**

**دالله ﷻ د کمال قدرت بیان.** بیافرمائی چه خلقولره پیداکول اوهغوی دمرګ نه پس بیا ژوندی کول ماته هم هغسې اسان دی څنګه چه یوکس.دهغۀ څه خبرې لره حکم فرمائیل کافی دی. د سترګې درپ هومره وخت نه لګی.نه ورته دوباره وینااوی اونۀ داسباب اومادې ضرورت.په یوفرمان سره به قیامت قائم شی.په یواوازسره به ټول راژوندی شی.الله تعالی دټولوخبرواوریدونکې دې.په ټولو کارونو خبردار دې. دیوکس خبرې اودهغۀ کارونه څنګه چه دهغۀ نه پټ نه دی هم دغسې دټول جهان هم دهغۀ نه پټ نه دی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ تَرَ | أَنَّ اللَّهَ | يُولِجُ | الَّيْلَ | فِي النَّهَارِ | وَيُولِجُ | النَّهَارَ | |
| آیاتۀ ګورې نۀ | چی بیشکه الله | ننباسی | شپه | په ورخ کښی | ننباسی | ورخ | |
| آیا تاته نه ده معلومه چې الله ﷻ شپه په ورخ کښې او ورخ په شپه کښې | | | | | | | |

فِي الَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَّجْرِيْٓ

په شپه کښي | او تابع کړي ئې دي | نمر | او سپوږمۍ | دا ټول | روان دي |

داخلوي | ..........او نمر او سپوږمۍ ئې تابع کړي دي | دا ټول (مخلوقات) د يوې مقررې

اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّاَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ذٰلِكَ

دنيټې مقررې پورې | او بيشکه الله | په هغه کارونو | چي کوئ ئې تاسو | خبر دې | دا کار

نيټې پورې روان لګيا دي | اوالله ﷻ ستاسو د کارونونه خبر دې | ..........................دا څکه

بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ

په سبب ددې چي بيشکه الله چي دې | هم دې حق دې | او بيشکه | هغه | چي رابلي ئې دا حلق

چي الله ﷻ په خپله هستئ کښي په خپله کامل دې | اودوئ چي دالله ﷻ نه سوا

مِنْ دُوْنِهِ الْبَاطِلُ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ

| بې دهغه نه | باطل دي | او بيشکه الله چي دې | هم دې اوچت دې | لوئې دې

دنورچا بلنه کوي | هغه ټول باطل دي | اوالله ﷻ دهر څيزنه اوچت او ډير لوئې دې

**قوله تعالى:: اَلَمْ تَرَاَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ**

**داورځې اوشپه اوموسمي تغيرات** :-شپې لره لږ شان کمول اودورځې زياتولووالا،اوورځې لره لږ کمول اوشپې لره لږ زياتولووالا الله تعالې دې.دژمې ورځې ورې اوشپې لوئې،اوګرمئ ورځې لوئې اوشپې ورې دهغهٔ دقدرت ظهوردې.نمراوسپوږمئ دهغهٔ دحکم پابندي.کوم خانې چه مقرردې هم په هغهٔ خانې کښې چليږي.ترقيامته پورې به برابر په خپل چال کښې روان وي.دخپل خانې نه اخواديخواکيدې نه شي.

**نمر چرته ځي؟**::په صحيحين کښې دي چه حضورﷺدابوذرؓنه تپوس اوکړوچه تاته پته شته چه دا نمر کوم خواځي؟جواب ئې ورکړوچه الله تعالى اودهغهٔ رسولﷺته ښه پته ده.حضورﷺورته اوفرمائيل چه دې لاړشي اودالله تعالى دعرش لاندې په سجده پريوځي.اودخپل رب نه اجازت غواړي.نزدې ده چه يوه ورځ به دهٔ ته اووئيلې شي چه دچرته نه چه راغلې ئې،هم هلته واپس لاړشه.دابن عباسؓقول دې چه نمر په منزل د ارټ دې.دورځې په خپل دوران کښې جاري وي.چه پريوځي نودشپې دزمکې نه لاندې په ګردش کښې وي.تردې پورې چه د مشرق نه راوخيژي.هم دغسې سپوږمئ هم.الله تعالى ستاسو د عملونو نه خبرداردې.څنګه چه فرمان دې چه تاته پته نشته،چه زمکه اواسمان کښې چه څه دي دټولو علم الله تعالې سره دې.دټولوخالق اوعالم الله تعالى دې.څنګه چه ارشاددې،الله تعالى اوؤه اسمانونه پيدا کړل،اودهغې په شان زمکې ئې هم پيداکړې.الخ...دانشانات پروردګارعالم ددې وجې نه ظاهروي چه تاسودالله تعالى په حق وجودباندې ايمان راوړئ اودهغهٔ نه علاوه ټول باطل اوګڼړئ.هغهٔ دټولونه بې نيازه اوبې پرواه دې.هرڅوك دهغهٔ محتاج،اودهغهٔ ددرفقيران دي.ټول دهغهٔ مخلوق اودهغهٔ غلامان دي.چاکښې يوې ذرې لره په حرکت کښې دراوستوقدرت نشته.ګوکهٔ ټول مخلوق اراده اوکړي چه يو مچ پيداکړي ټول به عاجزشي اوهيڅ کله به دومره قدرت بيانه مومي.هغهٔ دټولونه اوچت دې په چاچه هيڅ څيزنشته هغه دټولونه لوئې دې.دهغهٔ په وړاندې دهيچالوې والې نشته،هرڅيزدهغهٔ په وړاندې حقيراوپست دې.

اَلَمۡ تَرَ | اَنَّ الۡفُلۡكَ | تَجۡرِيۡ | فِي الۡبَحۡرِ | بِنِعۡمَةِ اللّٰهِ

آيا ته گوري نهٔ | چي بيشكه كشتئ | گرزي | په درياب كښې | په فضل دالله سره |

آيا ته گوري نه چې دالله ﷻ په فضل سره بيړئ په درياب كښې رواني دي

لِيُرِيَكُمۡ | مِّنۡ اٰيٰتِهٖ ؕ | اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ

دپاره ددې چې اوښائي تاسو ته | دښنو خپلو نه | بيشكه په دې كار كښې | ډيرې نښې دي |

چې تاسو ته د خپل قدرت نښې اوښائي | بيشكه چې په دې كښې دهر صبر كونكى

لِّكُلِّ صَبَّارٍ | شَكُوۡرٍ ﴿۳۱﴾ | وَاِذَا | غَشِيَهُمۡ | مَّوۡجٌ

دپاره دهر صبر كونكى | شكر ايستونكى | او كله چې | لاندې كړي دوئ لره | يوه چپه |

اوهر شكرګذار دپاره نښې دي | اوهر كله چې د(سمندرونو) چپې دڅپرونو پشان

كَالظُّلَلِ | دَعَوُا اللّٰهَ | مُخۡلِصِيۡنَ | لَهُ | الدِّيۡنَ ۚ | فَلَمَّا

پشان دچترئ | نورابلي الله | په دا حال كښې چې خالص كونكى دي | هغه لره | دين | خوهر كله چې

په دوئ باندې راوخيژي | نو دوئ ډير په اخلاص سره الله ﷻ رابلل شروع كړي | خو چې كله

نَجّٰهُمۡ | اِلَى الۡبَرِّ | فَمِنۡهُمۡ | مُّقۡتَصِدٌ ؕ | وَمَا يَجۡحَدُ

بچ كړي دوئ لره | وچې ته | نوځينى ددوئ نه | صحيح پاتې شي په عقيده كښې | او انكار نهٔ كوي

هغوئ د اوچې طرفته نجات مومي | نو ډير لږ خلق په كښې په اعتدال پاتې كيږي | او زمونږ

بِاٰيٰتِنَاۤ | اِلَّا | كُلُّ خَتَّارٍ | كَفُوۡرٍ ﴿۳۲﴾

دايتونو (نښو) زمونږ نه | مگر | هر غدار | ناشكره |

دايتونو نه هغه خلق انكار كوي اچې كوم بې لوظه ناشكره وي |

**قوله تعالى:: اَلَمۡ تَرَ اَنَّ الۡفُلۡكَ تَجۡرِيۡ فِي الۡبَحۡرِ**

**چپې وهونكي سمندراوكشتئ:-** دالله تعالى په حكم سره په سمندرونوكښې جهازونه چليږي.كهٔ هغهٔ په اوبوكښې دكشتئ دتېنګولواودكشتئ داوبودكېدو كولوطاقت نه وې ايښې،نوپه اوبوكښې به كشتئ څنګه چليدې؟هغه تاسوته دخپل قدرت نشانات ښائي.په مصيبت كښې صبراوپه راحت كښې شكركونكې ددې ډيرڅه عبرتونه حاصلولې شي.كله چه داكافران په سمندركښې موجونه راګيركړي اوددوى كشتئ په خوزيدوشي اوموجونه لكه دغرونوپه شان داخواديخوانه دكشتوسره لوبې كول شروع كړي نودوى خپل كفرشرك هرڅه هيركړي.اودوى په ژړافريادكښې يورب ته اوازونه كوي.څنګه چه بل ځائې كښې دى﴿ وَاِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الۡبَحۡرِ ﴾ الخ... درياب كښې چه كله تاسوته ضرردررسى نودالله نه علاوه هرڅه درنه ورك شى.په بل ايت كښې دى﴿ فَاِذَا رَكِبُوۡا فِي الۡفُلۡكِ ﴾ الخ...ددوى په دې منت زارئ كښې مونږ ته رحم راغې اودوى مود سمندربلې غاړې ته پوريباسل نوديرڅونه علاوه ټول كافرشى.مجاهد m هم دغه تفسيركړې دې.څنګه چه فرمان دي ﴿ اِذَا هُمۡ يُشۡرِكُوۡنَ ﴾ لفظى معنى داده چه په دوى كښې بعضې ددرميانې درجې واله وى.ابن زيد‌ هم دغه وانى څنګه چه فرمان دې﴿ فمنهم ظالم لنفسه ﴾الخ..په دوى كښې بعضې ظالمان دى بعضې ميانه رودى.الخ...اوداهم كيدې شى چه دادواړه ترې مرادوى نومطلب

به نې داوی چه چاداسې حالت ليدلي وی اووداسې مصيبت نه راوتې وی نوهغه ته پکاردی چه په
نيکوکښې پوره پوره کوشش کوی خودوی په مينځ کښې پاتی شی اوڅه خوبياکفرته لاړشی.ختاروانی
غدارچه وعده ماتونکې وی.دخترمعنی پوره وعده ماتول دی.کفوروانی منکرته چه
دنعمتونوناشکراومنکرشی.شکرخويوطرف ته هيرکړی اوذکرنې هم نه کوی.

يَآيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا
اے خلقو | خان اوساتئ دغضب
ائې خلقو | دخپل رب د

رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِىْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ
درب خپل نه| اواويريږئ | دهغه ورځې نه | چې بدله به نهٔ ورکوی | يو پلار | دطرفه دخوی خپل نه
عذاب نه اوويريږئ |اودهغې ورځې نه اويريږئ | چې يو پلار به دخپل ځوئې بدله نشی

وَلَا مَوْلُوْدٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْئًا
اونهٔ به يو خونې وی | چې هغه بدله ورکونکې وی | دطرفه دپلار خپل نه | هيڅ قدرله |
....ورکولې | اونه به يو ځوئې د خپل پلار په څه کار راشی

اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا
بيشکه وعده د الله | حقه ده | پس په دوکه کښې دوانهٔ چوی تاسو لره | ژوند ددنيا |
بيشکه دالله ﷻ وعده ريښتونې ده | نوددنيا ژوند مو په دهوکه کښې وانه چوی

وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ
اونهٔ ددوکه کړی تاسو | په معامله دالله کښې | دوکه باز(شيطان) | بيشکه الله چې دی | خاص هم دهغه سره دی
اونه دهوکه باز شيطان موداالله ﷻ په حق کښې دهوکه کښې واچوی |بيشکه الله ﷻ ته د قيامت

عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِى الْاَرْحَامِ
علم دقيامت دساعت | او نازلوی هغه | باران | او پيژنی هغه | هغه څه | چې په رحمونو کښې دی
علم دی | او هم هغه باران وروی |او هم هغه د رحم دننه (ماشوم) پيژنی

وَمَا تَدْرِىْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِىْ نَفْسٌ
اونهٔ پوهيږی | يو نفس | چی څه کار به کوی هغه | صباله | اونهٔ پوهيږی | يونفس
او هيچاته معلومه نه ده | چې صبا به څه کوی | او هيچا ته معلومه نه ده چې کوم ځائې

بِاَيِّ اَرْضٍ تَمُوْتُ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ
چې په کومه زمکه | به مری هغه | بيشکه الله | په هر څه عالم دی | خبردار دی |
به مړ کيږی | بيشکه الله ﷻ ته هرڅه معلوم دی | او په هرڅه پوهه دی

**قوله تعالى:: يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا**

**دقيامت په ورځ دځانی ځانئ عالم:-** الله تعالى خلق دقيامت دورځې نه ويروی اودخپلې تقوی حکم ورکوی.
ارشاددې چه په دغه ورځ به پلاردخپل بچی اوبچې به دخپل پلارپه څه کاررانشی.ديوبل فديه به اونه

شی.نه په دنیاباندې باورمهٔ کوه اواخرت مهٔ هیروه.دشیطان په فریب کښې مه راخه،ځکه چه صرف دېردې شاته خپل ښکارکوی.

**قوله تعالیٰ: لَا يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ**

**د عزیر علیه السلام قصه:** په ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت عزیر علیه السلام کله دخپل قوم تکلیف اولیدواوغم او خفګان نې ډیرزیات شو،خوب ترې اوتختیدو،نودخپل رب طرف ته تېښ شو ، فرمانی چه ماډیرزیات ژړا فریاداوکړو،اوبنه مې اوژړل،مونځونه مې اوکړل روژې مې اونیوې، دعاګانې مې اوغوښتې،یوځل مې په ژړاژړاکښې فریادکولوچه زماپه وړاندې یوه فرښته راغله، ما د هغې نه تپوس اوکړوچه ایانیکان خلق به دبدانو شفاعت کوی؟یاپلاربه دبچوپه کارراشی؟هغې اوفرمائیل دقیامت ورځ دجهګړودفیصلې ورځ ده.په دغه ورځ به الله تعالی په خپله مخامخ وی.څوك به دهغهٔ داجازت نه بغیرشونډې هم اونه خوزولې شی.څوك به دبل په باره کښې نهٔ نیولې کیږی.نه پلاردخوی په بدله کښې ،اونه خوې دپلارپه بدله کښې،نه ورورډورور په بدله کښې،اونه غلام دمالك په بدله کښې،نه به څوك دچاغم دردکمه ولې شی اونه به دچادچاسره شفقت اومحبت وی.یودبل طرف نه نه نیولې کیږی هرکس به په خپل غم کښې راګیروی.هرچاسره به خپل فکروی،هرکس به خپل غمونه ژاړی،هریوبه خپل بوج اوچتوی،دبل بوج نه.

**اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ**

**دغیب دخزانو کنجیانې صرف دالله تعالی په لاس کښې دی:-** دادغیب هغه کنجیانې دی دکوم علم چه د الله ﷻ نه علاوه بل هیچاته نشته.مګرددې نه پس چه الله تعالی دااوښائی.دقیامت دراتلوصحیح وخت، نه خوچانبی مرسل ته معلوم دی اونه څه مقربې فرښتې ته،ددې په وخت باندې صرف الله ﷻ خبرداردې. هم دغه شان باران به کله،چرته اوڅومره کیږی ددې علم خوچاته نشته.اوهرکله چه هغه فرښتوته حکم اوشی کومې چه په دې مقرردی نوهله هغوی ته پته اولګی.اوهغه څوك چه الله تعالی نې ورمعلوم کړی.هم دغه شان دامیدوارې په خیټه کښې څه دی؟په دې هم صرف الله تعالی پوهیږی.اوکله چه دالله تعالی دطرف نه فرښتوته حکم اوشی کومې چه په دې کارمقرردی نوهله هغوی ته پته اولګی.چه نریه دی یاماده؟هلك به وی یاجینۍ،نیك به وی یابد؟هم دغه شان هیچاته دامعلوم نه دی چه سبابه هغه څه کوی؟نه چاته داپته شته چه هغه به چرته مری؟په بل ایت کښې دی﴿ وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ﴾ دغیب کنجیانې دالله تعالی سره دی چه دهغې علم دهغهٔ نه علاوه بل چاته نشته. په بل حدیث کښې دی چه دغیب کنجیانې هم دغه پنځه څیزونه دی.دکوم بیان چه په ایت ﴿ان الله عنده﴾الخ...کښې دې.مسنداحمدکښې دی چه رسول الله ﷺاوفرمائیل،پنځه خبرې دی چه په هغې دالله تعالی نه علاوه هیڅوك نه پوهیږی.بیاحضورﷺهم ددې ایت تلاوت اوفرمائیلو.دبخاری دحدیث الفاظ خودادی چه داپنځه دغیب کنجیانې دی.په کوم چه دالله تعالی نه علاوه نورهیڅوك نه پوهیږی.الخ...

**پنځه څیزونه نبی ته هم نه دی معلوم:** په مسنداحمدکښې دحضورﷺدافرمان دې چه ماته د هر څیز کنجیانې راکړې شوې خوپنځه څیزونه،بیاهم دغه ایت حضورﷺتلاوت اوفرمائیلو،حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمانی چه حضورﷺزمونږ په مجلس کښې ناست وو،چه یوصاحب تشریف راوړو،تپوس نې اوکړو یارسول اللهﷺایمان څه څیزدې؟حضورﷺورته اوفرمائیل،الله تعالی لره، فرښتو لره، کتابونو، رسولانو او دمرګ نه پس ژوندې کیدولره منل.هغهٔ تپوس اوکړواسلام څه دې؟وې فرمائیل دیوالله تعالی عبادت کول،دهغهٔ سره څوك نه شریکول،مونځونه کول،زکواۃ ورکول،درمضان روژې نیول.هغهٔ تپوس اوکړواحسان څه دې؟وې فرمائیل ستادغه شان دالله تعالی عبادت کول چه ګویاتهٔ هغه وینې،اوکهٔ تهٔ نې نه وینې نوهغه تاوینی.هغهٔ اووئیل حضوراکرمﷺقیامت به کله وی؟وې فرمائیل ددې علم نه ماته

شته اونه تاته،اوزۀ درته ددې نخښې ښانيم.کله چه وينځه خپل مالك اوزيږوى،اوکله چه خپې ابله اوبربنډخلق د خلقو سرداران جوړشى. دقيامت علم په هغه پنځوخبروکښې دې دکوم علم چه دالله تعالى نه علاوه بل هيچاته نشته. بياحضورﷺددې ايت تلاوت اوفرمائيلو،هغه کس واپس لاړو، حضورﷺ اوفرمائيل لاړشى اوهغه واپس راولى:خلقوورپسې منډې کړې خوهغه چرته هم په نظر رانغې.حضورﷺ اوفرمائيل دا جبرائيلؑووچه خلقوته ددين ددخودنې دپاره راغلې وو.(بخارى)

مونږ ددې حديث مطلب په شرح بخارى کښې ښه په تفصيل سره بيان کړې دې.په مسندکښې دى چه حضرت جبرائيلؑخپل لاسونه دحضورﷺپه کونډوباندې اېښودې وواوداسوالونه ئې کړې وو.چه اسلام څه دې؟حضورﷺورته اوفرمائيل چه ته خپل مخ دالله تعالى طرف ته متوجه کړې،اودالله تعالى دوحده لاشريك ګواهى ورکړې.اودمحمددبنده اودرسول کيدوګواهى ورکړې.کله چه تادااوکړل نوته مسلمان شوې،تپوس ئې اوکړوچه ښه ايمان دڅه نوم دې؟وې فرمائيل الله تعالى باندې،اخرت باندې،فرښتوباندې،کتابونوباندې،نبيانوباندې عقيده ساتل،مرګ اودمرګ نه پس ژوندمنل،جنت اودوزخ،حساب،ميزان،دتقديرخيراوشرباندې ايمان لرل،تپوس ئې اوکړۀ چه کله زۀ داسې اوکړم نوزۀ به مومن شم؟حضورﷺورته اوفرمائيل او،بيائې داحسان تپوس ترې اوکړو،اوجواب ئې بياموندۀ،کوم چه پورته ذکرشو.بيادقيامت تپوس ئې اوکړو،حضورﷺورته اوفرمائيل،سبحان اللهادادهغۀ پنځو څيزونونه دې دکوم علم چه صرف الله تعالى دې.بياحضورﷺداايت تلاوت اوفرمائيلو. بيا د نشاناتو ذکر ئې هم اوکړو،چه خلق به لوې لوې کورونه جوړکړى.په يوصحيح سندسره په مسندکښې روايت دې چه دبنوعامرقبيلې يوکس حضورﷺته راغې اووې وئيل چه زۀ راشم؟حضورﷺخپل نوکروراوليږوچه ورشه اوهغۀ ته ادب اوښائيه.دۀ ته داجازت غوښتوچل نه ورځى.دۀ ته اووايه چه اول سلام اوکړه ،بيا تپوس اوکړه چه زۀ راتلې شم؟هغۀ واوريدل اوهغه شان سلام ئې اوکړواواجازت ئې اوغوښتو.دې ورغې اووې وئيل چه تازمونږ دپاره څه راوړى دى؟حضورﷺورته اوفرمائيل چه ښيګړه اوصرف ښيګړه .واوره ،ته ديوالله عبادت کوه،لات اوعزى پريږده.په شپه ورځ کښې پنځه مونځونه کوه.په ټول کال کښې ديوې مياشت روژې نيسه.دخپل مالدارانونه زکواة وصولوه اوپه خپلو فقيرانو باندې ئې تقسيموه،هغۀ تپوس اوکړوچه يارسول اللهﷺايه علم کښې څه داسې څه باقي شته چه تاسوته ئې پته نشته؟ حضورﷺ ورته اوفرمائيل چه اوداسې علم هم شته چه دهغې پته دالله تعالى نه علاوه بل هيچاته نشته. بيا حضورﷺ دا ايت تلاوت اوفرمائيلو،مجاهد فرمائى چه يوکلى وال راغې اودحضورﷺنه ئې تپوس اوکړوچه زماښځه حامله ده.راته اووايه چه څه ماشوم به کيږى؟زمونږ په ښارکښې قحط دې راته اوفرمائيه چه باران به کله کيږى؟ددې خوماته پته ده چه زۀ کله پيداشوې يم،اوس ته دامعلوم کړه چه کله به مرم؟ددې په جواب کښې داايت نازل شو،چه ماته ددې څيزونومطلق علم نشته.مجاهد فرمائى چه دغه دغيب کنجيانې دى.چه دڅه په باره کښې دالله تعالى فرمان دې چه دغيب کنجيانې دالله تعالى سره دى.حضرت صديقهؓ فرمائى چه څوك تاته اووائى چه رسول اللهﷺدسباپه خبرو پوهيدلو نوپوهه شه چه هغه غټ دروغژن دې.الله تعالى فرمائى چه هيچاته پته نشته چه هغه به سباڅه کوى؟دقتاده قول دې چه ډيرڅيزونه دى چه دهغې علم الله تعالى هيچاته نه دې ورکړې.نه نبى اکرمﷺاونه فرښتوته.دالله تعالى سره دقيامت علم دې.هيچاته پته نشته چه په کوم کال،په کومه مياشت،په کومه ورځ،ياپه کومه شپه کښې به هغه راځى.هم دغه شان دباران علم دهغۀ نه علاوه چاته نشته چه کله به راځى؟اوچاته پته نشته چه دحاملې ښځې په خيټه کښې به بچې نروى که ماده.سوريه وى که تور؟اوهيچاته پته نشته چه هغه به سبانيکى کوى يابدى؟مرى به ياژوندې به وى؟ډيره ممکنه ده چه سبامرګ ياافت راشى.نه چاته داخبرشته چه په کومه زمکه کښې به هغه ښخيږى.اويابه په سمندرکښې اوبهيولې شى.يابه په ځنګل کښې مرى؟ نرمې ياسختې زمکې ته به ځى؟په حديث مبارك

کښې دی چه کله دچامرګ په بله زمکه کښې وی نودهغهٔ هم هلته څه کارپیداشی اوهلته ورله مرګ راشی.په بل روایت کښې دی چه دې فرمائیلوسره حضورﷺداایت تلاوت اوفرمائیلو.داعشی همدان په شعرکښې دی په کوم کښې چه دامضمون په ډیرښکلې اندازکښې بیان شوې دې.په یوروایت کښې دی چه دقیامت په ورځ به زمکه الله تعالی ته اووائی چه دادی ستاامانتونه.چه ماته دې حواله کړې وو.په طبرانی وغیره کښې هم داحدیث شته دې.

دسوره لقمان تفسیرختم شو.(والحمدلله رب اللعالمین وحسبناالله ونعم الوکیل)

.............................................

## تفسیرسوره الم سجده مکیه

**دسوره سجدې فضیلت**:- حضرت امام بخاری په کتاب الجمعه کښې داحدیث بیان کړې دې چه رسول اللهﷺجمعې په ورځ دسحریه مونځ کښې ﴿الم سجده﴾او﴿ هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ ﴾ الخ..پورې اولوستلو.په مسنداحمدکښې دی چه حضورﷺبه همیشه داودهٔ کیدونه مخکښې سورة﴿الم سجده﴾او﴿ تَبٰرَكَ الَّذِیْ بِیَدِهِ الْمُلْكُ ﴾ لوستله.

| ایاتونه | | سورة السجدة مكية وهي ثلاثون اٰية وثلاث ركوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | | |
| ۳۰ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ۳ |

الٓمّٓ ۝ تَنْزِیْلُ الْكِتٰبِ لَا رَیْبَ فِیْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۝

ا ل م | نازلیدل | ددې کتاب | چې نشته شك | په دې کښې | دطرفه درب العالمین نه دی |

الف لام میم ، دا نازل شوې کتاب دې| چې هیڅ شک په کښې نشته | درب العالمین دطرفنه راغلې دې

اَمْ یَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ۚ بَلْ هُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ

یا وائی دا خلق | چې دخانه ئې جوړ کړې دی دا قرآن | بلکه دا حق دې | دطرفه درب ستانه دې |

آیا دا خلق وائی چې پیغمبر داکتاب دخانه جوړ کړې دې | نه ، بلکه داستا د رب د طرفه په حقه راغلې دې

لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اَتٰىهُمْ مِّنْ نَّذِیْرٍ مِّنْ قَبْلِكَ

دپاره ددې چې ته اویروې | هغه قوم | چې نه دې راغلې هغوئ ته | څوك یرونکې | مخکښې ستانه |

چې ته پرې هغه قوم ویروې | چې ستا نه وړاندې ورته هیڅ ویرونکې نه دې راغلې

لَعَلَّهُمْ یَهْتَدُوْنَ ۝ اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

دپاره ددې چې هغوئ | نیغه لار بیا مومې | الله | هغه ذات دې | چې پیدا ئې کړل | اسمانونه |

کیدې شی چې دوئ په سمه روان شی | الله هغه ذات دې چې آسمانونه اوزمکه اوددې په مینځ کښې

وَالْاَرْضَ وَمَا بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ

او زمکه | او هغه | چې په منځ ددې دواړو کښې دی | په شپږو ورځو کښې | بیا |

چې څه دی هغه ئې په شپږو ورځو کښې پیدا کړی دی | .............. بیا په

اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ط مَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا شَفِيْعٍ ط

برابر شو په عرش باندي| نشته دي تاسو لره | بې دهغه نه | څوك دوست | اونهٔ څوك سفارشي |

عرش باندي قائم شو| د هغه نه سوا ستاسو دپاره نه څوک مددګار شته اونه څوک سفارشي

اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ۝ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ مِنَ السَّمَآءِ اِلَى الْاَرْضِ

آيا نو تاسو نصيحت نهٔ قبلوئ | بندوبست کوی | دکار (دمعاملاتو) | دآسمان نه | دزمکې پورې |

آيا تاسو ددې نه سبق نه اخلئ| هغه د آسمان نه ترزمکې پورې دهرکار بندوبست کوی

ثُمَّ يَعْرُجُ اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗٓ اَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا

بيا خيژی | هغه ته | په يوه داسې ورځ کښې | چې دې مقدار دهغې | زر کاله |دهغه موديٰ نه

بيا به هر کار هغه ته په داسې ورځ کښې پيش کيږی | چې دهغې مقدار به ستاسو د حساب

تَعُدُّوْنَ۝ ذٰلِكَ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيْزُ

چې شماروئ ئې تاسو | هم دغه الله | عالم دې | په هر پټ | او ښکاره | غالب دې |

مطابق پوره زر کاله وی | همدا الله ﷺ دې چې په پټو او په ښکاره ټولو څيزونو عالم دې | زبردست

الرَّحِيْمُ۝ لا

مهربانه دې |

او مهربان دې |

**قوله تعالى:: تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ**

**قران کريم صرف دالله تعالى دطرف نه دې:-** دسورتونوپه شروع کښې چه کوم مقطعات حروف دی دهغې پوره بحث مونږ دسورد بقرې دتفسيرپه شروع کښې کړې دی.دلته دوباره دبيانولوضرورت نشته.داکتاب قران حکيم بې شکه اوبې شبهې دالله رب العالمين دطرف نه نازل کړې شوې دې. دمشرکانوداقول غلط دې چه حضورﷺدخپله خانه جوړکړې دې.نه يقيناً داالله تعالى دطرف نه دې.ځکه نازل شوچه حضوراکرمﷺدغه قوم ويرولوسره پوهه کړی دچاطرف ته چه دحضورﷺنه مخکښې څوك پيغمبرنه ووراغلې.چه دوی دحق اتباع اوکړی اوخلاصی بيامومی.

**زمکه اواسمان په کوم ترتيب سره جوړ شو:-** دټولوڅيزونوخالق الله تعالى دې.هغهٔ په شپږورځوکښې زمکې اواسمانونه جوړکړل.بيائې په عرش باندې قرار بيامونده.ددې تفسيرتيرشوې دې.مالك اوخالق هم هغه دې.دهرڅيزتکميل دهغهٔ په لاس کښې دې. دټولو کارونو تدبيرونه هغه کوی.په هرڅيزدهغهٔ غلبه ده.دهغهٔ نه سوانه څوك دمخلوق والی شته اونه دهغهٔ داجازت نه بغيرشفارس کونکې.اې هغه خلقواچه دهغهٔ نه علاوه دنوروعبادت کوئ،په نوروبهروسه کوئ،تاسو پوهيدې نه شئ چه ددومره قوتونووالا به ولې څوك خپل شريك کار جوړ کړی؟ هغهٔ دبرابرئ نه،دوزيراومشيرنه،دشريك اوبيهم نه پاك منزه اومبرادې.دهغهٔ نه سواهيڅوك معبود نشته. اونه دهغهٔ نه علاوه څوك پالونکې شته.په نسائی کښې دی چه حضرت ابوهريرهؓفرمانی چه حضورﷺزمالاس اونيولواووې فرمائيل،الله تعالى زمکې اواسمانونه اوځه چه ددې په مينځ کښې دی تمام څيزونه پيداکړل اوعرش باندې قيام اوفرمائيلو.خاوره دخالی په ورځ جوړه شوه،غرونه داتوارپه ورځ،اونې دپيرپه ورځ،بدی دنهې په ورځ،نوردچاشنبې په

ورځ،څناوردزيارت په ورځ،ادم ﷺ جمعې په ورځ دمازيګرنه پس دورځې په اخري ګهړئ کښې،دې دتولې زمکې دخاورې نه پيدا کړې شوچه په هغې کښې سره توره ښه بده هرقسمه وه.ددې په وجه دادم ﷺ اولاددبداوښه شو.امام بخاري دې ته معلل ونيلې دې.

فرمائي چه په بل سندسره روايت دې چه حضرت ابوهريره ﷺ داکعب احبارنه بيان کړې دې، اوحضراتو محدثينوهم دامعلول ښودلې دې،والله اعلم.

قوله تعالى: يُدَبِّرُ الْاَمْرَ مِنَ السَّمَآءِ

دهغهٔ حکم داووواړواسمانونودپورته نازليږي اوداووواړوزمکونه لاندې پورې رسي.څنګه چه په بل ايت کښې دى.(اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ ؕ یَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَیْنَهُنَّ) الله تعالى اوواسمانونه جوړکړل اودهغې په مثل اووزمکې،دهغهٔ حکم ددې ټولوپه مينځ کښې راکوزيږي.اعمال دخپل ديوان طرف ته اوچتولې شى،چه داسماني دنيانه پورته دې.دزمکې نه اولنې اسمان دپينځوسووکالوپه فاصله دې،اوهم دومره ددې زړهٔ دې.دومره ختل کوزيدل دالله تعالى په قدرت سره فرښته دسترګوپه رب کښې اوکړي. څکه نې اوفرمائيل چه يوه ورځ چه دهغې شمارستاسودشميرې په اعتبارسره زرکاله ده.ددې کارونو تدبير کونکې الله تعالى دې.هغهٔ دخپلوبندګانوداعمالونه خبرداردې.ټول واړهٔ اعمال دهغهٔ طرف ته اوخيژي.هغه غالب دې،چاچه هرڅيزخپل ماتحت کړې دې.ټول بندګان اوټول ستهونه دهغهٔ په وړاندې ښکته شوى دى.هغهٔ په خپلومومنانوبندګانوډيرزيات مهربانه دې.عزيزدې په خپل رحمت کښې اورحيم دې په خپل عزت کښې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| الَّذِیْٓ | اَحْسَنَ | كُلَّ شَیْءٍ | خَلَقَهٗ |
| هغه ذات | چې ډير ښهٔ ئې جوړ کړې دې | هر څيز | چې جوړ کړې دې هغه |
| هرڅه چې ئې جوړ کړى دى \| هغه ډير ښه (او محکم) ئې جوړ کړى دى | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَبَدَاَ | خَلْقَ الْاِنْسَانِ | مِنْ طِیْنٍ ۚ | ثُمَّ جَعَلَ | نَسْلَهٗ |
| او شروع اوکړه هغه | دپيدائش دانسان | دختې نه | بيا ئې شروع کړل | پيدا کول دنسل دهغه |
| اود انسان پيدائش ئې د ښاورې نه شروع کړې دې \| بيا د هغه نسل ئې د نچوړ شوؤ | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنْ سُلٰلَةٍ | مِّنْ مَّآءٍ مَّهِیْنٍ ۚ ⑧ | ثُمَّ سَوّٰىهُ | وَنَفَخَ |
| دست (يعني نطفي) نه | داوبو سپکونه | بيا ئې برابر کړو قالب دهغه | او پوك ئې کړو |
| اوبي قدره اوبو نه اوچلولو \| بيا ئې د هغه اندامونه روغ کړل \| او په کښې ئې | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِیْهِ | مِنْ رُّوْحِهٖ | وَجَعَلَ | لَكُمُ | السَّمْعَ | وَالْاَبْصَارَ |
| په هغې کښې | دروح خپل نه | او درې کړل | تاسو له | غوږونه | او سترګې |
| دخپل طرفنه روح پوک وهلو \| اوتاسو ته ئې غوږونه ، سترګې او زړونه درکړل | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالْاَفْـِٕدَةَ ؕ | قَلِیْلًا | مَّا | تَشْكُرُوْنَ ⑨ | وَقَالُوْٓا ءَاِذَا |
| او زړونه | ډير لږ دې | هغه شکر | چې تاسو ئې اوباسئ | اووائي دوئ \| ايا هر کله چې |
| مګر تاسو ډير لږ شکر ادا کوئى \| ......او دوئ وائي چې هرکله مونږ په زمکه | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ضَلَلْنَا | فِي الْأَرْضِ | ءَاِنَّا | لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ؕ | بَلْ |
| ورك شو مونږ | په زمكه كښې | نو آيا مونږ به | په پيداوښت نوى كښې (بيا راپيدا كيږو) | بلكه |
| كښې ختم شو | نوآيا مونږ به بيا دوباره راژوندى كولې شو | ......................خبره دا ده چې | | |
| هُمْ | بِلِقَآئِ رَبِّهِمْ | كٰفِرُوْنَ ۝ | قُلْ | يَتَوَفّٰىكُمْ |
| دوئ | دملاقات درب خپل نه | انكار كونكى دى | ورته اووايه | چې په قبضه كښې به اخلى تاسو |
| دا خلق د خپل رب دملاقات نه منكر دى | .............(ائې پيغمبره) اووايه چې | | | |
| مَّلَكُ الْمَوْتِ | الَّذِيْ | وُكِّلَ | بِكُمْ | ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ |
| فرښته دمرګ | هغه فرښته | چې مقرر كړې شوى ده | په تاسو | بيا به رب خپل ته |
| ملك الموت چې په تاسو مقرر دې ستاسو روحونه به قبض كوى | نو بيا به خپل رب ته واپس | | | |
| تُرْجَعُوْنَ ۝ | | | | |
| واپس كړې شئ تاسو | | | | |
| كولې شئ | | | | |

**قوله تعالى:: اَلَّذِيْۤ اَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ**

**دَ الله تعالى هريوتخليق شاهكاردې** :- فرمائى چه الله تعالى سبحانه وتعالى هريوځيز په ښه طريقه بهترين توګه اوپه بهترين تركيب سره ښانسته جوړكړى دى. دَ هريوځيز پيدائش خومره ښكلې څنګه مستحكم او مضبوط دې. دَ آسمان اوزمكې پيدائش سره پخپله دَ انسان پيدائش باندې غوراوكړه. دَ ده شروع اوكوره دَ خاورې نه پيداكړو. ابوالبشرحضرت آدم ﷺ دَ خاورې نه پيداشو. بيائې دَ هغه نسل دَ نطفې نه روان كړو كوم چه دَ سړى دَ شاوښخې دَ سينې نه راوخى. بيائې هغه يعنى آدم ﷺ دَ خاورې پيداكولونه پس صحيح سالم كړو او په هغه كښې خپل روح پوك وهلو. تاسو ته ئې غوږونه سترګې او عقل دركړو. افسوس دې چه تاسو بيا هم په شكر كولو كښې دَ كثرت نه كارنه اخلئ. دَ انجام په لحاظ سره نيك اوخوشحاله هغه سړې دې چه دَ الله تعالى وركړې شوې طاقتونه هم دَ هغه په لاركښې خرچ كوى. جل شانه وعز اسمه.

**قوله تعالى:: وَقَالُوْۤا ءَاِذَا ضَلَلْنَا فِي الْاَرْضِ**

**دَ مرګ فرشتې سره ملاقات**:- دَ كافرانوعقيده بيانولې شى چه هغوى دَ مرګ نه پس دَ ژوند قايل نه دى اوهغوى دا محال ګنړى اووائى چه كله زمونږ ذرې ذرې جدا شى اودَ خاورو سره خاورې شى نوبيابه هم مونږ دَ نوې سر نه جوړولې شو.؟افسوس داخلق دَ خپل خان په شان الله تعالى باندې هم قياس كوى او په خپل محدود قدرت باندې دَ الله تعالى لامحدود قدرت اندازه كوى. دا خو منى او پوهيږى چه الله تعالى په اول خل پيداكړې يو نوحيرانتياده چه په دويم خل باندې راپيداكولو باندې دوى ولې هغه قادر نه منى؟ سره دَ دې چه دَ هغه خو صرف حكم چليږى. كوم چه اووئيل چه اوشه هم هغه اوشى. ددې دَپاره ئې اوفرمائيل چه دَ هغوى دَ خپل پروردګار دَ ملاقات نه انكار دې.

**قوله تعالى:: مَلَكُ الْمَوْتِ**

**دَ مرګ فرشته يوه ده كه ډيرې دى؟**:: دَ دې نه پس آيت كښې فرمائى چه ملك الموت كوم چه ستاسو به روح قبض كولوباندې مقرردې تاسو به مړه كړى. دَ دې آيت نه خو په ظاهره هم دا معلوميږى چه ملك

الموت د يوې فرښتې لقب دې. دحضرت براء ﷺ هغه حديث د كوم بيان چه په سورت ابراهيم كښې تيرشوې دې. د دې نه هم اول دا خبره په پوهه كښې راخي اوبه بعضې آثاروكښې د هغه نوم حضرت عزرائيل ﷺ هم دې اوهم دا مشهوره ده. (¹) اوهغه سره كاركونكې نورې فرښتې هم شته چه د بدن نه روح راوباسي اود مرئي پورې رسيدو نه پس ملك الموت هغه اخلي. د هغه د پاره زمكه راغونډه كړې شوې ده اوداسې ده لكه چه زمونږ مخې ته يوه ركيبئې (پليټ) كيخودې شوې وى چه څه غواړو رااوچتوو. (²) يومرسل حديث (³) هم د دې مضمون دې اود ابن عباس ﷺ مقوله هم ده.

**دملک الموت د پنځه وخته د راتلو مطلب:** ابن ابى حاتم كښې دى د يوانصارى سرته حضور ﷺ ملك الموت ليدلو سره اوفرمائيل ملك الموت زما صحابى سره آسانى اوكړه. هغه جواب وركړو اې د الله تعالى نبى ﷺ تسكين اوخاطر اوساته اوزړه خوشحاله كړه والله زه پخپله ايمان والا سره ډيره نرمى كونكې يم. واوره يارسول الله ﷺ په الله تعالى قسم د ټولې دنياهريوكچه اوپوخ كوركښې كه هغه اوچه وى كه په لمده په هره ورځ كښې زما پنځه خل تګ وى هريووړوكې او لوئى زه د هغوى نه هم ډير پيژنم څومره چه هغه پخپله خپل ځان پيژنى. يارسول الله ﷺ يقين اوكړئې په الله تعالى قسم زه خو پخپله د يو مچ نه هم د روح قبض كولو قدرت نه لرم تركومې چه ماته د الله تعالى حكم اونه شى. د حضرت جعفر ﷺ بيان دې چه د ملك الموت په ورځ كښې پنځه خل د هريوسړى تپوس پښتنه كول هم دا دى چه هغه ﷺ پنځه وخته مونځونوكښې ګورى كه چرې هغه د مونځونوحفاظت كونكې وى نوفرښتې هغه سره نيزدې اوسى اوشيطان د هغه نه لرې وى اود هغه په آخرى وخت كښې فرښته هغه ته د لااله الاالله محمدرسول الله تلقين كوى. مجاهد ﷺ فرمائى په هركورهره ورځ ملك الموت دوه خل راځى. كعب احبار ﷺ دې سره داهم فرمائى چه هرې يوې دروازې سره اودريږى اوبه ورځ كښې اووه خل په دې نظر اچوى چه په دې كښې څوك داسې خو نشته چه د هغه روح ويستلوحكم شوې وى. بيا د قيامت په ورځ د ټولو د الله تعالى طرف ته واپس كيدل دى. د قبرونونه په راوتلوسره د محشر ميدان كښې د الله تعالى وړاندې حاضريدلو سره به د خپلو كړو ميوه بيامومى.

| | | |
|---|---|---|
| نَاكِسُوْا | إِذِ الْمُجْرِمُوْنَ | وَلَوْ تَرٰى |
| تيټ نيونكى وى | كله چې مجرمان خلق | او كاش چې اووينې ته |

| اوكاش ! ته هغه مجرمان اووينې | چې هغوئ به خپل خدائې ته سرونه ټيت |
|---|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَسَمِعْنَا | أَبْصَرْنَا | رَبَّنَا | عِنْدَ رَبِّهِمْ ط | رُءُوْسِهِمْ |
| بنه واوريدل مونږه | بنه اوليدل مونږه | اے ربه زمونږه | په دربار درب خپل كښې | سرونو خپلو لره |

| نيولى وى | (او وائى به) اې زمونږه ربه اوس زمونږ سترګې او غوږونه پرانستې شول |
|---|---|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُوْقِنُوْنَ ۝ | إِنَّا | صَالِحًا | نَعْمَلْ | فَارْجِعْنَا |
| (اوس) يقين كونكى يو | بيشكه مونږه | نيك | چې عمل اوكړو مونږ | پس واپس اوليږه مونږه |

| نو واپس مو دنيا ته اوليږه | چې مونږ نيک عمل اوكړو | زمونږ اوس يقين اوشو |
|---|---|---|

(¹) الطبرى: ۱۷۵/۲۰.
(²) الطبرى: ۱۷۵/۲۰.
(³) الدرالمنثور:۳۳۲/۵.

| |
|---|
| وَلَوْ شِئْنَا لَآتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدٰىهَا وَلٰكِنْ |
| او كه غوښتلې مونږه \| نوخامخا به وركړې وو مونږ \| هر نفس ته \| هدايت دهغه (داول نه) \| ليكن |
| اوكه مونږ ته منظوروې \| نو هر چا ته به مو خپله لاره وركړې وه \| خوزما دطرفنه داخبره |
| حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّيْ لَأَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ |
| ثابته شوه هغه خبره \| دطرفه زمانه \| چې خامخا به زه ډكوم \| دوزخ \| دپيريانونه \| او دانسانانونه |
| فيصله شوې ده \| چې دوزخ به د (بدكارو) پيريانو او بنيادمو دواړو نه ډكوم |
| أَجْمَعِيْنَ۝ فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا |
| دټولو نه \| پس اوڅكئ مزه \| دهغه عمل \| چې هير كړو تاسو \| ملاقات \| ددې ورځې ستاسو \| |
| نو اوس (دخپل عمل) خوند اوڅكئ \| خكه چې ددې ورځې راتگ مو |
| إِنَّا نَسِيْنٰكُمْ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا |
| نو بيشكه مونږ \| هير كړئ مونږه تاسو \| اواوڅكئ \| عذاب دهميشوالي \| په سبب دهغې عمل \| |
| هير كړې \|اونن مونږ تاسو هير كړئ \|اود خپلو عملونو په بدل كښې دهميشه عذاب |
| كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ۝ |
| چې وئ تاسو \| چې كوۀ به مو \| |
| خوندونه اوڅكئ \| |

**قوله تعالى:: وَلَوْ تَرٰٓى إِذِ الْمُجْرِمُوْنَ**

**دَ قيامت په ورځ د ګناهګارانو خراب حالت:-** الله تعالى فرمائی چه كله داګناهګاران خپل بيا راژوندى كيدل په خپلو سترګو اووينى اوپه ډير ذلت او سپكاوى سره ملامته ستړونه ښكته كړې دَ الله تعالى په وړاندې ولاړوى هغه وخت به وائى اې الله زمونږ سترګې اوغړيدې غوږونه مو كولاوشو اوس مونږ ستا د احكامو د هرقسم په ځاى راوړلوته تياريو. په هغه ورځ به د ښه سوچ فكر او هوښياران جوړشى. ټول روڼتوب او كونړتوب به ترې لاړشى. پخپله به خپل ځان ملامت كوى اودوزخ ته په تلوكښې به وائى كه د غوږونواوسترګونه مو په دنياكښې كاراخستې وې نونن به دوزخيان نه جوړيدو. اوس به الله تعالى ته بيا عرض كوى چه مونږ بيا دنيا ته اوليګه نو مونږ به نيك عمل كولوسره راشو. زمونږ اوس يقين پيداشو چه ستا ملاقات حق دې ستا كلام حق دې خوالله تعالى ته ښه معلوم دى كه دا خلق بيا هم اوليګلې شى نوهم هغه حركت به كوى بيابه د الله تعالى آياتونه دروغ ګنړى بيا به انبياء كرام عليهم السلام تنګوى. لكه څنګه چه پخپله دَ قرآن كريم په آيت ﴿ وَلَوْ تَرٰٓى إِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ فَقَالُوْا يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ۝ ﴾ (١)

**قوله تعالى:: وَلَوْ شِئْنَا لَآتَيْنَا**

**دټولو مخلوقاتو په نه مؤمن كولو كښې دالله ﷻ حكمت دې::** دَ دې دَ پاره دلته فرمائ كه مونږ غوښتل نو هر سړى ته به موهدايت وركولو. لكه چه ارشاد دې كه ستا رب غواړى نودَ زمكې ټولوكس به مؤمن جوړ

---

(١) ٦/الانعام:٢٧.

شي. خود الله تعالى فيصله صادره شوې ده چه د انسان او پيريانونه به جهنم ډکولې شي. دا يوه اخرې فيصله ده. دَ الله تعالى دَ ذات نه اودَ هغه دَ پوره پوره كلماتو سره عذابونونه مونږ دهغه پناه غواړو. دَ دوزخ والا ته به دَ رټنې په توګه ونيلې شي چه دنن ورځې دَ ملاقات نه مزه واخلئى اودَ دې عذابونه اوڅکئى. دا محال ګڼړلو سره تاسو هغه معامله اوکړه چه يوهيرونکې كوى اوس به مونږ هم تاسو سره هم دغه سلوك كوو. دَ الله تعالى ذات دَ هيرې او حقيقي نسيان نه پاك دې. داخو نې صرف دَبدلې په توګه اوفرمانيل. يوبل آيت كښې دى ﴿ وَقِيْلَ الْيَوْمَ نَنْسٰىكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا وَمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ۝ ﴾ (۱) نن به مونږ تاسو هيركړو لكه څنګه چه تاسو دَ دې ورځې ملاقات هيركړې وو. دَ خپل كفر اوتكذيب په وجه اوس دَ هميشه عذابِ مزې اوڅتوئى. بل آيت كښې دى ﴿ لَا يَذُوْقُوْنَ فِيْهَا بَرْدًا وَّلَا شَرَابًا۝ ﴾ (۲) هلته به يخوالې اواوبه نه وى بغيرد ګرمواوبو وينواو پيپونونه به بل هيڅ نه وى.

اِنَّمَا | يُؤْمِنُ | بِاٰيٰتِنَا
| بيشكه هم دا خبره ده | چې ايمان راوړى | په ايتونو زمونږ |
........بيشكه زمونږ په آيتونو باندې هغه څوک ايمان

الَّذِيْنَ | اِذَا | ذُكِّرُوْا | بِهَا | خَرُّوْا | سُجَّدًا
هغه كسان | كله چې | ورته نصيحت كيږى | په دې ايتونو سره | نو پريوزى | سجده كونكى |
راوړى | چې وخت ورته يادولې شى | نو په سجده كښې پروځي

وَّسَبَّحُوْا | بِحَمْدِ | رَبِّهِمْ | وَهُمْ | لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ۝ | تَتَجَافٰى
او تسبيح وائى | دثنا درب خپل سره | او هغوئ | تكبر نهٔ كوى | جدا وى |
او دخپل رب حمد او ثناء وائى | او هغوئ تكبر نه كوى | ........ د هغوئ اړخونه

جُنُوْبُهُمْ | عَنِ الْمَضَاجِعِ | يَدْعُوْنَ | رَبَّهُمْ | خَوْفًا | وَّطَمَعًا
ډډې دهغوئ | دخايونو دخوب نه | رابلي هغوئ | رب خپل | ديرې | او دطمعې سره |
دخوب دخايونونه په ډډه وى | اوخپل رب ته دويرې اواميد دواړو تر مينځه دعا كوى

وَّمِمَّا | رَزَقْنٰهُمْ | يُنْفِقُوْنَ۝ | فَلَا تَعْلَمُ | نَفْسٌ
او دهغې رزق نه | چې وركړې دې مونږ هغوئ ته | خرچ كوى | پس نهٔ دې خبر | يو نفس |
او څه چې مو هغوئ ته وركړى دى دهغې نه خرچ كوى | نو هيڅا ته معلومه نه ده | چې د هغه

مَّآ | اُخْفِيَ | لَهُمْ | مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ | جَزَآءً
دهغه څيز نه | چې پټ ساتلې شوې دې | دپاره دهغوئ | ديخوالي دستركو نه | دپاره دجزاء |
دپاره د ستركو ديخوالي څومره ډيرنعمتونه تيار پراته دى | ........ دغه دهغوئ

بِمَا | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ۝
دهغه عمل | چې وو هغوئ | چې كوو به ئې |
دخپلو عملونو بدله ده |

(۱) ۴۵/الجاثية:۳۴.
(۲) ۷۸/النباء:۲۴.

**قوله تعالی:: إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا**

**دَالله تعالی دَ رضا دَ لټون حکم:-** دَ رښتونی ایماندار نښه داده چه هغه دَ زړه په غوږونو زمونږ آیاتونه اوري اوبه هغې باندې عمل کوی. په ژبه سره نی هم حق منی اودَ زړه نه نی هم حق ګڼری. سجده کوی اودَ خپل رب سبحانه وتعالی تسبیح اوحمدوثنا بیانوی. اودَ حق دَتابعدارئی نه ځان نه پټوی. نه کبر اوغرور کوی. داخراب عادتونه دَ کافرانودی. لکه چه ارشاد دې ﴿ لَكُمْ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ ﴾[۱] یعنی زمادَعبادت نه کبرکونکی به ذلیل اوخوار دوزخ ته ځی.

**قوله تعالی:: تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ**

ددې رښتونی ایماندارانو یوخوبی داهم دې چه هغوی دَ شپې خپل خوبونه او بسترې پریږدی او مونځونه اداکوی. تهجد کوی([۲]) دَ ماښام اوماسخوتن په مینځ کښې مونځ هم ترې بعضو مراد اخستې دې. څوك وائی دې نه مراد دَ ماسخوتن دَ مونځ انتظاردې. ([۳]) یوبل قول دې چه دې نه دَ ماسخوتن اوسحر مونځ په جمع سره مراد دې. هغوی دَ الله تعالی نه دعاګانې کوی دَ هغه دَ عذابونونه دَ خلاصی دَ پاره اودَ هغه نعمتونه حاصلولو دَ پاره. دې سره صدقه اوخیرات هم کوی. دَ خپل حیثیت مطابق دَ الله تعالی په لارکښې ورکړه کوی. هغه نیکئی هم کوی دَ کوم تعلق چه دَ هغوی ذات سره وی اوهغه نیکئی هم دَ لاسه نه پریږدی دَ کوموتعلق چه نورو سره وی دوی. په دې ښکلونیکوکښې دَ ټولونه وړاندې شوی هغه خلق دی څوك چه په درجوکښې هم دَ ټولونه وړاندې دی. یعنی دَ حضرت آدم ﷺ دَ اولاد سردار دَ فخر دوجهان حضرت محمد مصطفی ﷺ لکه څنګه چه دَ عبدالله بن رواحه ﷺ په شعرونوکښې دی:-

وفينا رسول الله يتلو كتابه — اذا انشق معروف من الصبح ساطع
يبيت يجافي جنبه عن فراشه — اذا استثقلت بالمشركين المضاجع

یعنی په مونږ کښې دَ الله تعالی رسول ﷺ موجود دې چه سحر کیدو سره دَالله تعالی دَ پاك کتاب تلاوت کوی. دَشپې چه مشرکان په ژورخوب اوده وی دَ حضور ﷺ اړخ دَ هغوی دَ بسترې نه جدا وی([۴])

**د دوو کسانو نه الله ﷻ زیات خوشحالیږی::** مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی الله تعالی دَ دووکسانونه ډیر زیات خوشحاله وی یودَ هغه نه چه ښه په خوږ خوب باندې اوده وی خوناځاپی دَ خپل رب نعمتونه او دَ هغه سزاګانې رایادې کړی او راپاسی خپل نرمه اوګرمه بستره پریږدی اوزما په وړاندې اودریږی مونځ شروع کړی. بل هغه کس چه دَ کافرانو سره په جنګ کښې دې او په جنګ کښې دَ مسلمانانو ډله کمزورې شي خودا سړې په دې پوهیږی چه په تیخته کښې دَ الله تعالی ناراضګی ده او په وړاندې کیدوکښې دَ الله تعالی رضا ده دَ میدان طرف ته وړاندې کیږی اوکافرانوسره جهادکوی تردې چه خپل سر دَ هغه په نوم باندې قربانی کړی. الله تعالی په فخر سره دا خپل فرښتوته ښائی اودَ هغوی په وړاندې دَ هغه دَ عمل تعریف کوی. ([۵])

**جنت ته رسولو والا عمل::** مسنداحمدکښې دی چه حضرت معاذ بن جبل ﷺ فرمائی زه نبی کریم ﷺ سره په یو سفر کښې ووم دَ سحر په وخت کښې حضور ﷺ سره نیزدې روان ووم ما تپوس اوکړو اې دَ الله

---

[۱]) ۴۰/المؤمن:۶۰.

[۲]) الطبری:۲۰/۱۸۰.

[۳]) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة السجدة:۳۱۹۶وسنده حسن

[۴]) صحیح بخاری کتاب الادب باب هجاء المشرکین:۶۱۵۱.

[۵]) احمد:۴۱۶/۱، ابوداوُد کتاب الجهاد باب فی الرجل یشری نفسه:۲۵۳۶وسنده حسن، ابن حبان:۲۵۵۷، حاکم:۱۱۲/۲.



تعالی پیغمبره ﷺ ماته یوداسې عمل اوښایه چه ما جنت ته اورسوی اود دوزخ نه مې جداکړی. حضورﷺ اوفرمائیل چه تاخودیر دَ کار سوال اوکړو خو چه الله تعالی په چاباندې آسان کړی نو هغه ته ډیر آسان دې. واوره ته دَ الله تعالی عبادت کوه هغه سره څوك شریك کوه مه دَ مونځونوپابندی کوه دَ رمضان روژې ساته دَ بیت الله حج کوه اوزکوة ورکوه. اوس زه تاته دَ نیکودروازې اوښایم. روژه ډال دې دَ ګناهونو صدقه ګناهونه معاف کوی اودَ انسان دَ نیمې شپې مونځ. بیا حضور ﷺ آیت ﴿ تَتَجَافٰى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۙ وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ۝ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝﴾[1] تلاوت اوفرمائیلو. بیائې اوفرمائیل اوس زه تاته دَ دې عمل سر دَ دې ستنې اودَ دې قبې اوښایم چه څومره اوچت دې. دَ دې ټولو کارونوسر خواسلام دې دَ دې ستن مونځ دې اودَ دې دَ قبې اوچتوالې دَ الله تعالی دَ لارې جهاد دې. بیا فرمائی چه زه تاته دَ دې ټولوکارونو سردار اوښایم؟ بیائې خپله ژبه مبارکه اونیوله او وئې فرمائیل دا قابوساته. ماوئیل چه مونږ به په خپلو خبرو اترو باندې هم رانیولې کیږو؟ حضورﷺ اوفرمائیل اې معاذ ﷺ افسوس تاته دا نه ده معلومه چه انسان پرمخې دوزخ ته غورزونکې څیز هم دَ دې ژبې دا غاړې دی.[2] هم دا حدیث په څو سندونوسره روایت دې. په یوکښې داهم دی چه آیت ﴿ تَتَجَافٰى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۙ وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ۝ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝﴾[3] لوستلو سره حضوراکرم ﷺ اوفرمائیل دَ دې نه مراد دَ بنده دَ شپې مونځ کول دی. یوبل روایت کښې دَحضورﷺ دا فرمان نقل دې دَانسان دَ نیمې شپې قیام کول بیاد حضورﷺ هم دَ دې آیت تلاوت فرمائیل نقل دی. یوحدیث کښې دی چه کله دَ قیامت په ورځ دَ محشر په میدان کښې ټول ورانډې روستو خلق راجمع کړې شی نو یوآواز کونکې فرښته به په اوچت آواز سره اعلان کوی کوم چه به ټول مخلوق اوری هغه به وائی چه نن به ټولونه معلومه شی چه دَ ټولونه زیات عزت دار دَ الله تعالی په نیز څوك دې؟ بیا به واپس آواز کوی چه تهجد کونکی خلق دې راپاسی اودَ دې آیت تلاوت به فرمائی نودا خلق به راپاسی او په شمیرکښې به ډیر کم وی. حضرت بلال ﷺ فرمائی چه کله آیت نازل شو مونږ په مجلس کښې ناست وو اوبعضې صحابه کرامﷺ خو به دَ ماښام دَ مانځه نه واخله ترماسخوتن مانځه پورې په مونځونوکښې مشغول وو نوداآیت نازل شو. دَ دې حدیث هم دا یوسنددې. بیا فرمائی چه دَ هغوی دَ پاره په جنت کښې کوم کوم نعمتونه اوخوندونه پټ ساتلی دَ دې علم چاته هم نشته. دې خلقو به هم پټ عبادت کولو دغه شان مونږ هم پټ دَ دوی دَ سترګویخوالې اودَ دوی دَ زړه آرام تیارساتلې چه نه یوې سترګې لیدلې اونه نې په یوزړه کښې خیال تیرشوی. دَ بخاری شریف حدیث قدسی دې مادَ خپلو نیکانوبندیګانودَ پاره هغه رحمتونه اونعمتونه ایخودې دی چه نه دَ یوې سترګې په کتوکښې راغلی اونه دَ یوغوږ په اوریدو کښې اونه دَ یوزړه په سوچ کښې. دا حدیث بیانولو سره دَحدیث راوی حضرت ابوهریره ﷺ اوفرمائیل دَ قرآن پاك دا آیت ﴿ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ اُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ ۚ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝﴾ [4] په دې روایت کښې دَ ﴿قرة﴾ په ځائې ﴿قرات﴾ لوستل هم نقل دی.[5] یوبل روایت کښې دَ رسول الله ﷺ ارشاد دې دَ جنت نعمتونه چه چاته

---

[1] ) ۳۲/السجدة:۱۶–۱۷.

[2] ) احمد:۲۳۱/۵، ترمذی کتاب الایمان باب ماجاء فی حرمة الصلاة:۲۶۱۶وهوحسن،ابن ماجه:۳۹۷۳، السنن الکبری:۱۱۳۹۲.

[3] ) ۳۲/السجدة:۱۶–۱۷.

[4] ) ۲۳/السجدة: ۱۷.

[5] ) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة سجدة:۴۷۷۹، باب قوله ﴿فلاتعلم نفس ماأخفی.....﴾ صحیح مسلم:۲۸۲۴.

ملاوشو هغه به کله هم بې نعمته نه وی. د هغه کپړې به زړېږی نه د هغه ځوانی به ختمیږی نه د هغه د پاره په جنت کښې هغه څه دی چه نه یوې سترګې لیدلی نه یوغوږ اوریدلی اونه دَ یوانسان په زړه کښې دَ هغې وهم اوګمان شوې دې. (۱)

په یوحدیث کښې رسول الله ﷺ دَ جنت صفت بیانولوسره په آخره کښې دافرمائیلې دی اوبیانې دا آیت ﴿ تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ۞ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۞﴾(۲) تلاوت کړو. (۳) حدیث قدسی کښې دی مادَ خپلو بندیګانودَ پاره داسې نعمتونه تیارکړی دی چه نه سترګولیدلې دی نه غوږونو اوریدلی دی بلکه په اندازه اوخیال کښې هم نه شی راتلې.

**د ادنې جنتي جنت:** صحیح مسلم کښې نبی کریم ﷺ فرمانی حضرت موسی ﷺ الله رب العزت ته عرض اوکړو یاالله تعالی دَ ادنی جنتی درجه څه ده؟ جواب ملاوشو چه ادنی جنتی هغه سړې دې چه دَ ټولوجنتیانوجنت ته دَ تلونه پس به راځی هغه ته به وئیلې شی جنت ته داخل شه هغه به وائی یاالله چرته لاړشم؟ هریوبه خپل ځائ باندې قبضه کړې ده اوخپل څیزونه ئې سنبال کړی دی. هغه ته به وئیلې شی چه آیا ته به دې خوشحاله ئې چه تاته دومره ملاوشی لکه چه په دنیاکښې یولوئ بادشاه سره وو؟ هغه به وائی پروردګار زه په دې باندې خوشحاله یم. الله تعالی به اوفرمائیل ئې ستادَ پاره دومره دی، دومره نور دومره نور دومره نور اوپنځه چنده. دې به وائی بس بس اې زما ربه زه راضی یم. الله تعالی به فرمائی دا ټول مونږ تاله درکړه اودَ دې په لس چنده نور هم درکړل اونور هم چه ستا زړه څه غواړی او په کوم سره ستا سترګې یخې شی دې به وائي چه یاالله زما خو وخکی کولاوشو زړه مې خوشحاله شو. حضرت موسی ﷺ اووئیل دَ اوچتې درجې دَ جنتی کیفیت به څنګه وی؟ وئی فرمائیل داهغه خلق دی دَ چاخاطر مدارت اوعزت چه ما په خپل لاس سره کړې اوپه دې باندې خپل مهرلګولې دې بیا نه هغه دَ چا په کتوکښې راغلی نه په اوریدوکښې اونه دَ چا په خیال کښې. دَ دې مصداق دَ الله تعالی دَ کتاب آیت ﴿ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۞﴾ (۴) دې (۵)

**په جنت کښې حورې او شغل:** حضرت عامر بن عبدالواحد رحمه الله فرمائی ماته دا خبررسیدلې دې چه یو جنتی به خپلې حورې سره په مینه اومحبت کښې اویاکالوپورې مشغول وی دَ بل څه څیز طرف ته به دَ هغه هډو خیال نه وی. بیا به بل طرف ته خیال اوکړی نوګوری به چه دَ اولې نه به نوره ډیره ښائسته اونورانی شکل والا حوره وی هغه به دې خپل طرف ته په خیال کیدو باندې خوشحاله شی اووائی به چه اوس به زما مراد هم پوره شی. دې به وائی ته څوك ئې؟ هغه به جواب ورکړی زه هم ستا زیاتی یم. اوس به دې ټول هغې طرف ته متوجه شی بیا به اویاکالوپورې بل طرف ته هډو ګوری نه. دومره موده پس چه کله بیا دَ ده خیال بل طرف ته شی نوګوری به چه دَ دې نه به هم یوه بله ښائسته حوره وی هغه به وائی چه اوس وخت راغلو چه په تاکښې به زماهم حصه وی. دې به تپوس کوی ته څوك ئې؟ هغه به جواب وِرکوی چه زه دَ هغوی نه یم دَ چاباره کښې چه الله رب العزت فرمائیلې وو چه څوك ئې هم نه پیژنی دَ هغوی دَ پاره اودَ هغوی دَ سترګو یخولودَ پاره الله تعالی کوم کوم څیزونه پټ ساتلې.

---

۱) صحیح مسلم کتاب الجنة باب فی دوام نعیم اهل الجنة واهلها......: ۲۸۳۶، احمد:۲/۴۱۶.(مسلم)

۲) ۳۲/السجدة:۱۶-۱۷.

۳) صحیح مسلم کتاب الجنة باب صفة الجنة:۲۸۲۵.

۴) ۲۳/السجدة: ۱۷.

۵) صحیح مسلم کتاب الایمان باب ادنی اهل الجنة منزلها فیها:۱۸۹، ترمذی:۳۱۹۸، ابن حبان:۶۲۱۶.



**په جنت کښې جنتیانو ته تحفې:** حضرت سعیدبن جبیر رحمه الله فرمائی فرښتې به جنتیانوله د دنیاد اندازې نه په ورځ کښې درې درې ځل د جنت عدن نه د الله تعالی تحفې راوړی راخی کومې چه د هغوی په جنت کښې نه وی. هم د دې بیان په دې آیت کښې دې. هغه فرښتې به دوی ته وائی چه الله تعالی تاسونه خوشحاله دې.

**د جنت درجات:** د حضرت ابوالیمان هوزنی رحمه الله یاد یو بل بزرګ نه روایت دې د جنت سل درجې دی اوله درجه د سپینو زرو ده اود دې زمکه هم د سپینوزرو ده د دې محلونه هم د سپینوزرودی د دې خاوره مشك دی. دویمه درجه د سرو زرو ده زمکه ئې هم د سرو کورونه هم د سرو لوښی هم د سرو زرو اوخاوره د مشکوده. دریمه مرغلرې، زمکه ئې هم د مرغلرو کورنه هم لوښی هم اوخاوره د مشکو اوباقی درې کم سل خوهغه دی کومې چه نه سترګولیدلی نه غوږونو اوریدلی اونه د یوانسان په زړه کښې د هغې څه خیال تیرشوې. بیاهم د دې آیت تلاوت اوفرمائیلو. ابن جریرکښې دی جضور ﷺ د روح الامین علیه السلام نه روایت کوی چه د انسان نیکئی اوبدئی به راوړلې شی بعضې به د بعضو نه کمې کړې شی بیا که یوه نیکی هم باقی پاتې شوه نوالله تعالی به هغه زیاته کړی اوپه جنت کښې به وسعت ورکړی [1] د راوی یزداد نه تپوس اوکړې چه بدئې چرته لاړې؟ نوهغه د دې آیت تلاوت اوکړو ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا وَنَتَجَاوَزُ عَن سَيِّئَاتِهِمْ فِي أَصْحَابِ الْجَنَّةِ ۖ وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ﴾ [2]

یعنی داهغه خلق دی د چا نیك اعمال چه مونږ قبول کړی دی اود هغوی بدئی مونږ معاف کړې. راوی اوونیل چه بیا د دې آیت څه معنی ده. ﴿فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ [3] فرمائی چه کله بنده یوه نیکی د خلقو نه پټه کوی نوالله تعالی هم د قیامت په ورځ د هغه د آرام ځیزونه چه د هغه د پاره ئې پټ ساتلې وووربه کړی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَفَمَن | كَانَ | مُؤْمِنًا | كَمَن |
| ایاپس هغه څوك | چې وی | مومن | کیدي شي پشان دهغه چا |
| ایا څوک چې مومن وی | | | هغه د هغه چا پشان کیدې شي |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَانَ | فَاسِقًا | لَّا يَسْتَوُونَ ۝١٨ | أَمَّا | الَّذِينَ | آمَنُوا |
| چې وی | فاسق | نه شي برابریدې دا دواړه | هر چې دی | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړی دی |
| کوم چې فاسق وی | | دوئ هیڅ کله نشي برابریدې | ......چا چې ایمان راوړو او | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَعَمِلُوا | الصَّالِحَاتِ | فَلَهُمْ | جَنَّاتُ | الْمَأْوَىٰ | نُزُلًا |
| او کړی ئې دی عملونه | نیك | پس وی هغوئ لره | جنتونه | داوسیدو | په طور دمیلمستیا |
| نیك عملونه ئې اوکړل | | د هغوئ داوسیدو دپاره به باغونه وی | | | ..................دا به ملمستیاوی |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِمَا | كَانُوا | يَعْمَلُونَ ۝١٩ | وَأَمَّا | الَّذِينَ |
| په سبب دهغې عملونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | او هر چې دی | هغه کسان |
| دهغوئ دهغه عملونو په بدله کښې کوم چه هغوی کول | | ........ | اوکومو کسانو چې نافرمانی کړی | |

---

[1] الطبری: ۲۰/۱۸۵، .
[2] ٤٦/الاحقاف: ١٦.
[3] ٣٢/السجدة: ١٧.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَسَقُوْا | فَمَأْوٰىهُمُ | النَّارُ | كُلَّمَآ | اَرَادُوْٓا | |

چې فسق ئې اختيار كړې دي | پس ځاى داوسيدو دهغوئ | وور دي | هركله چې اراده اوكړي هغوئ

وي | نود هغوئ د استوګنې ځائې اور دي | ......................كله چې ترې د وتلو اراده اوكړي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْ يَّخْرُجُوْا | مِنْهَآ | اُعِيْدُوْا | فِيْهَا | وَقِيْلَ |

چې اوځي ادهغې نه | نو واپس به ورغورزولې شي | په هغې كښې | او وئيلي كيږي به |

نوهغوى به په كښې واپس اوغورزولې شي | ...................... او ورته به اووئيلي شي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | ذُوْقُوْا | عَذَابَ النَّارِ | الَّذِيْ | كُنْتُمْ | بِهٖ | تُكَذِّبُوْنَ |

هغوئ ته | اوځكئ | عذاب دوور | هغه وور | چې وئ تاسو | هغې لره | چې دروغ به مو ګڼړلو |

چې اوس دهغې دوزخ دعذاب خوند اوځكئ | چې تاسوبه دروغ ګڼړلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ | مِّنَ الْعَذَابِ | الْاَدْنٰى | دُوْنَ | الْعَذَابِ | الْاَكْبَرِ |

او خامخا به مونږ څكوو دوئ ته | دعذاب | نزدې نه | مخكښې | دعذاب | لوئ نه |

اومونږ به ورته دهغه لوئې عذاب نه وړاندې دلته نزدې سزا هم وركړو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَعَلَّهُمْ | يَرْجِعُوْنَ | وَمَنْ | اَظْلَمُ | مِمَّنْ |

دپاره ددې چې دوئ | واپس شي (بغاوت) نه | او څوك دي | ډير ظالم | دهغه چانه |

كيدې شي چې دوئ (حقې لارې) ته واپس شي | اود هغه چا نه غټ ظالم څوك كيدې شي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ذُكِّرَ | بِاٰيٰتِ | رَبِّهٖ | ثُمَّ | اَعْرَضَ | عَنْهَا |

چې نصيحت اوكړې شي هغه ته | په آيتونو | درب خپل سره | بيا | مخ واړوى | دهغې نه |

چې دخپل رب آيتونه ورته راياد كړې شي | اودې ترې نه بيا هم مخ اړوى

| | | |
|---|---|---|
| اِنَّا | مِنَ الْمُجْرِمِيْنَ | مُنْتَقِمُوْنَ |

بيشكه مونږه | ددا سې مجرمانو نه | خامخا بدله اغستونكې يو |

مونږ به خامخا دمجرمانو نه بدله اخلو |

**قوله تعالي:: اَفَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا**

**مؤمن اوفاسق برابر نه دي:-** د الله تعالى د كرم اوعدل بيان په دې آياتونوكښې دې چه د هغه په نيز نيكوكار اوبدكاربرابر نه دي. لكه چه ارشاد دي ﴿ اَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ اَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ سَآءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ﴾ [1] يعنى آيادغه خلق چه كومې بدئى كوى داخيال ئى كړې دې چه دوى به د ايماندارو او نيك عمل كونكو په شان كړې؟ د هغوى مرګ او ژوند برابردې؟ داځنګه خرابې منصوبې جوړوى. بل آيت كښې دى ﴿ اَمْ نَجْعَلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ كَالْمُفْسِدِيْنَ فِى الْاَرْضِ اَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِيْنَ كَالْفُجَّارِ ﴾ [2] يعنى ايماندار اونيك عمل خلق به مونږد زمكې د فساديانو برابر كړو؟ پرهيزګاران

[1] ٤٥/الجاثية:٢١.

[2] ٣٨/ص:٢٨.

به د ګناهګارانو برابر کړو؟ بل آیت کښې دی ﴿لَا يَسْتَوِيْٓ اَصْحٰبُ النَّارِ وَاَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۭ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَاۗىِٕزُوْنَ﴾ (۱) دوزخیان اوجنتیان برابریدې نه شي. دلته هم اوفرمائیلې شو چه مؤمن اوکافر به د قیامت په ورځ په یوه درجه کښې نه وی. وائی چه دا آیت د حضرت علی رضی الله عنه اوعقبه بن ابی معیط باره کښې نازل شوې دی. (۲) بیانی د دې دوارو قسموتفصیل بیان کړو چه کوم یود خپل زړه نه د کلام الله تصدیق اوکړو اود هغې مطابق ئې عمل هم اوکړو نو هغوی ته به هغه جنتونه ملاویږی په کوم کښې چه مکانات دی اوچتې بالاخانې دی اود آرام اوسیدو ټول سامان. دا د هغوی د نیکوعملونوبدله اومیلمستیاده اوکوموخلقو چه اطاعت پریخودو د هغوی ځایْ دوزخ دې دکوم نه چه به هغوی نه شی وتلې. لکه چه بل آیت کښې دی ﴿كُلَّمَآ اَرَادُوْٓا اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ اُعِيْدُوْا فِيْهَا ۤ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ﴾ (۳) یعنی چه کله هم د هغه ځایْ د غم نه خلاصې غواړی ورټونبلې به شی.

**قوله تعالی: أُعِيدُوا فِيهَا**

**د جهنمیانو لاسونه پښې به تړلی وی:** حضرت فضیل بن عیاض رحمه الله فرمائی والله د هغوی پښې لاسونه به تړلې وی د اور شغلې به هغوی بښکته پورته اوړی فرښتې به هغوی ته سزاګانې ورکوی او په رټلوسره به ورته فرمائی د دې دوزخ د عذاب خوند واخلئی کوم چه تاسو دروغ ګڼړلو.

**قوله تعالی: مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ**

**ددې نه څه مراد دې؟:** د ادنی عذاب نه مراد د دنیامصیبتونه آفتونه غم درد بیمارنی دی. دا د دې د پاره وی چه انسان هوښیارشي اود الله تعالی طرف ته ټیټ شی (۴) اود غټو عذابونونه خلاصې حاصل کړی. یوقول داهم دې چه د دې نه مراددګناهونوهغه مقررکړې شوی سزاګانې دی کومې چه په دنیا کښې ورکولې شی کوم ته چه په شرعی اصطلاح کښې حدودوائی. اوداهم روایت دې چه د دې نه عذاب قبر مراد دې. په نسائی کښې دی چه د دې نه مراد قحط کالی ده. حضرت ابی رضی الله عنه فرمائی د سپوږمئې شلیدل د لوګی راتلل اونیونکې او بردبادونکې عذاب. (۵) اود بدر په ورځ د دغه کافرانو قیدکول اود هغوی قتل کول څکه چه د بدر دې شکست د مکې معظمې کور کور د ماتم ځایْ جوړکړې وو. د دې عذابونوطرف ته په دې آیت کښې اشاره ده. بیافرمائې چه څوك د الله تعالی آیاتونه واوری د هغې په وضاحت باندې پوهه شی بیا د هغې نه مخ واړوی اود هغې نه انکاراوکړی د هغه نه به لویْ ظالم بل څوك وی؟

**قوله تعالی: إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ**

حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه د الله تعالی د ذکر نه ډډه مه کوه داسې کونکی بې عزت بې وقعت اولوئی ګناهګاران دی. دلته هم ارشاد فرمائیلې شی چه د داسې ګناهګارانو نه به مونږ ضرور بدله او انتقام اخلو. د حضرت رسول مقبول صلی الله علیه وسلم ارشاد دې درې کارونه چه چا اوکړه هغه مجرم شوچاچه بغیر وجه یوه جهنډا اودروله چا چه د مور پلار نافرمانی اوکړه چا چه د ظالم په ظلم کښې د هغه ملګرتیااوکړه. دامجرمان خلق دی اود الله تعالی فرمان دې چه مونږ به د مجرمانونه تپوس پوښتنه کوو اود هغوی نه به پوره بدله اخلو. (ابن ابی حاتم)

---

(۱) ۵۹/الحشر: ۲۰.
(۲) الطبری: ۱۸۸/۲۰.
(۳) ۲۲/الحج: ۲۲.
(۴) الطبری: ۲۰/۱۸۹-۱۹۰.
(۵) احمد ۱۲۸/۵ وسنده صحیح.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا

| او خامخا ورکړې دي مونږه |

او مونږ موسی علیه السلام ته

مُوْسَى الْكِتٰبَ فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ

موسی ته | کتاب | پس مه کیږه ته | په شك کښې | د ملاقات ددغه څیز نه |

کتاب (تورات) ورکړې وو | نو ته دالله ﷻ سره په ملاقات کښې هیڅ شک مه کوه

وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۲۳﴾ وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ

او جوړ کړې وو مونږ هغه | هدایت | دپاره دبني اسرائیلو | او جوړ کړل مونږه | دهغوی نه |

او هغه مو د بني اسرائیلو دپاره دهدایت سبب ګرځولې وو| او په هغوئ کښې مو نور

اَىِٕمَّةً يَّهْدُوْنَ بِاَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوْا ۣ

امامان (مشران) | چې لاره به ئې (خلقو ته) ښودله | په حکم زمونږ سره | هر کله چې صبر اوکړو هغوئ

ډیر پیشوایان پیدا کړی وو| چې زمونږ په حکم به ئې خلقو ته نیغه لاره خودله | ځکه چې دغه نیکانو

وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يُوْقِنُوْنَ ﴿۲۴﴾ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ

اوو هغوئ | په آیتونو زمونږ باندې | چې یقین به ئې کوو | بیشکه | رب ستاسو دې | هم هغه به

صبر کولو || او زمونږ په ایتونو به ئې یقین کولو | ............ بیشکه ستا رب به

يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا

فیصله اوکړی | په منځ ددې بني اسرائیلو کښې | په ورځ دقیامت | دهغه خبرو | چې وو هغوئ

پخپله دقیامت په ورځ ددوئ په مینځ کښې د هغه خبرو په باره کښې فیصله اوکړی | کومو کښې چې

فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۲۵﴾

په هغې کښې | چې اختلاف به ئې کولو |

دوی اختلاف کولو

**قوله تعالی:: فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ**

**د معراج په شپه د حضورﷺ د حضرت موسی علیه السلام سره ملاقات:-** فرمائی چه مونږ موسی علیه السلام ته کتاب توراة ورکړو دهغه دملاقات باره کښې شك شبه مه کوئې. قتاده رحمه الله فرمائی یعني دمعراج په شپه.[1] په حدیث کښې دی چه ما د معراج په شپه حضرت موسی علیه السلام بن عمران اوکتلو چه هغه غنم رنګې اوږد قدوالاکورګوچې وینښتو والا ووداسې لکه چه د قبیله شنوأة خلق دی. هم په هغه شپه ما حضرت عیسی علیه السلام هم اولیدو هغه درمیانه قد اوسورسپین وونیغ وینښته ئې وو. ما هغه شپه حضرت مالك علیه السلام هم اولیدو کوم چه د دوزخ داروغه دې. اودجال مې اولیدو دا ټول د هغه نښونه دی کومې چه الله

[1] الطبری: ۲۰/۱۹۳.

تعالی حضورﷺ ته اوخودلې. نوتاسو د هغه په ملاقات کښې شك شبه مه کوئ. حضورﷺ یقیناً حضرت موسی ﷺ اولیدلو هغه سره ملاوشو په کومه شپه چه دهغوی ته معراج اوکړې شو. (۱)

وَجَعَلْنٰهُ هُدًى نه څه مرادی؟: موسی ﷺ مونږ د بنی اسرائیلو د هدایت د پاره جوړ کړې وو. (۲) اودا هم کیدې شي چه داکتاب مونږ د اسرائیلیانو د پاره هدایت جوړکړې وی لکه چه په سورت بنی اسرائیل کښې دی ﴿ وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَلَّا تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِيْ وَكِيْلًا ﴾ (۳) یعنی مونږ موسی ﷺ ته کتاب ورکړو اوهغه مو د بنی اسرائیلو د پاره هادی جوړکړو چه تاسو زما نه بغیربل څوك کارسازمه گنړئ. بیافرمائی چه هغه د الله تعالی احکام په ځای د راوړو او د هغه نافرمانئ پریخودو او د هغه خبروتصدیق او د هغه د رسولانو په تابعدارئ باندې په صبرکلك ولاړوو نو مونږ د هغوی نه دهدایت پیشواجوړکړل. کوم چه د الله تعالی احکام خلقوته رسوی. د نیکئ طرف ته رابلل کوی د بدو نه منع کول کوی خوچه کله د هغوی حالت بدل شو هغوی په کلام الله کښې بدلون تحریف اوتاویل شروع کړو نوالله تعالی هم د هغوی نه دامنصب واخستلو. نیك عمل اوصحیح عقیدې د هغوی نه لرې کړې شوې. او دوی د دنیانه بچ شوی وو. حضرت سفیان ثوری رحمه الله فرمائی داخلق هم داسې وو انسانانوله لاتق دی چه د هغوی پیشواوی چه د هغوی په اقتداکولوسره د دنیانه بچ شي. هغوی فرمائی چه د دین د پاره علم ضروری دې لکه څنگه چه د بدن د پاره خوراك ضروری دې. د حضرت سفیان ثوری رحمه الله نه د حضرت علی رضی الله عنه د دې فرمان باره کښې تپوس اوشو چه دصبردرجه په ایمان کښې څنگه ده؟ ونې فرمائیل چه داسې دی لکه سر په بدن کښې. آیا تا د الله تعالی دا فرمان نه دې اوریدلې چه مونږ د هغوی د صبرپه وجه هغوی داسې پیشوا جوړکړل چه هغوی به زمونږ د حکم هدایت کولو. هغوی اوفرمائیل چه مطلب دادې چه هغوی ټول کارونه په سر اخستې وونوالله تعالی هم هغوی پیشوا جوړکړل. ارشاد دې چه مونږ بنی اسرائیلو ته کتاب حکمت او نبوت ورکړو اوپاك رزق مو ورنصیب کړو او د جهان په خلقو باندې مو فضیلت ورکړوالخ. دلته ئې هم د آیت په آخر کښې اوفرمائیل چه په کومو عقیدو او اعمالوکښې د هغوی اختلاف وو دهغوی فیصله به پخپله الله تعالی د قیامت په ورځ اوکړي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | اَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ | كَمْ |
| | | | آیا هدایت ملاو نه شو دوئ ته | چې څومره ډیر |
| | | | آیادوئ ددې خبرې نه هم سبق وانه خستلو | چې مونږ |
| اَهْلَكْنَا | مِنْ قَبْلِهِمْ | مِّنَ الْقُرُوْنِ | يَمْشُوْنَ | فِيْ مَسٰكِنِهِمْ ؕ |
| هلاك كړې دي مونږه | مخكښې ددوئ نه | قومونه | اچې نن گرځي دوئ | په كورونودهغوئ كښې |
| | | ددوئ نه وړاندې څومره قومونه هلاک کړې دي | اچې نن دهغوئ په کورونوتیریږی راتیریږی | |
| اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ ؕ | اَفَلَا يَسْمَعُوْنَ ۞ | اَوَلَمْ يَرَوْا | اَنَّا |
| بیشکه په دې کښې | ډیرې نښې دی | آیا دوئ اوری نه | آیا اونه گوری دوئ | چې مونږه |
| بیشکه په دې کښې لوئې نښې دی | نو آیا دوئ نه آوری | آیا دوئ چرې غور نه دې کړې | | |

(۱) الطبری: ۲۰/۱۹۴.
(۲) الطبری: ۱۲۷۵۸.
(۳) ۱۷/الاسراء: ۲.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَسُوْقُ | الْمَآءَ | | اِلَى الْاَرْضِ الْجُرُزِ | | فَنُخْرِجُ | بِهٖ | زَرْعًا |
| بيايوو | اوبه | زمكي | وچې | ته | پس رااوباسو مونږ | په هغې سره | فصل |
| چې او چې زمكې طرفته اوبه رسوو | | | | | ............نو مونږ دې په ذريعه فصلونه | | |
| تَاْكُلُ | مِنْهُ | اَنْعَامُهُمْ | وَاَنْفُسُهُمْ | | اَفَلَا يُبْصِرُوْنَ﴿۲۷﴾ | | |
| چې خوراك كوي | دهغې نه | څاروي ددوئ | او نفسونه ددوئ | | آيا دوئ ګوری نهٔ | | |
| راټوكوو ............چې ددوئ څاروي اوپخپله دوی ئې هم اوخوری آيا دوئ وينی نه ؟ | | | | | | | |

**قوله تعالى:: اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا نَسُوْقُ الْمَآءَ اِلَى الْاَرْضِ**

**دَ رسولانو دَ مخالفت انجام:-** آيادوی دَ دې خبرې دَ كتلونه پس هم په نيغه لار نه ځی؟ دَ هغوی نه وړاندې مونږ ګمراه خلق تباه اوبربادكړی دی. نن دهغوی پته نه لګی. هغوی هم رسولان دروغ ګڼړل او دَ الله تعالى دَ خبرونه ئې بې پرواهی اوكړه. اوس هم داتكذيب كونكی دهغوی په مكانونوكښې اوسيږی. دهغې ويرانې دَ هغوی دَ وړاندينو مالكانو هلاكت دَهغوی په وړاندې دې خودوی بياهم عبرت نه حاصلوی. هم داخبره قرآن كريم په څوځايونوكښې بيان فرمائيلې دی. چه غير آباد كنډرې دا وران محلونه خوستاسودَستر ګواوستاسودَ غوږونو كولاوولو دَ پاره په خپل ځان كښې ډيرې نښې لری. ګورئی دَ الله تعالى خبرې نه منلو اودَ رسولانو سپكاوې كولو څومره خراب انجام شو. ولې ستاسو غوږونه دَ هغوی دَ خبرو نه نااشنادی؟

**قوله تعالى:: اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا نَسُوْقُ الْمَآءَ**

**داولې لختی نهرونه اَبشارونه اوسمندرونه دَ الله تعالى دَ قدرت نخښې دی:-** بيا الله تعالى خپل لطف كرم احسان اوانعام بيان فرمائی چه دَ آسمان نه اوبه نازلوی دَ غرونودَ اوچتوځايونونه رابهيږی لختو دريابونو په ذريعه اخواديخوا خوريږی. په شاړو زمكوكښې په دې سره آبادی اوشينكې راځی. اوچوالې په لوندوالی سره مرګ په ژوندسره بدليږی. دَ مفسرينوقول داهم دې چه دَ(جرز)دَ مصر زمكه ده خودا ټيك نه دی. اوكه په مصر كښې هم داسې زمكه وی نو وی به په آيت كښې مراد هغه ټولې حصې دی كومې چه اوچې شوی وی كومې چه دَ اوبوحاجت مندې وی سختې شوې وی زمكه دَ يوځائ كيدو په وجه چاودلې وی. بې شكه دَ مصر زمكه هم داسې ده دَ دريائې نيل نه هغه خړوب كيږی. دَ حبشو دَ بارانونو اوبه خپل ځان سره سره خاوره هم راكاږی اودَ مصر زمكه كومه چه شاړه او شګلنه ده هغه ددې اوبواو دَ دې خاورې په وجه دَ كرقابله كيږی او په هركال كښې دَ هر فصل غله تازه په اوبوسره دوی ته حاصليږی كومه چه دَ اخوانه ديخوا وی. دَ هغه حكيم كريم منان اورحيم خودا ټولې مهربانئی دې. هم دَ هغه ذات دَ تعريف قابل دې.

**يوه عيبه واقعه::** روايت دې چه دَ مصر خلق دَ بوونه په مياشت كښې حضرت عمرو بن عاص ﷺ له راغله وئی ونيل زمونږ پخوانې عادت دې چه په دې مياشت كښې څوك درياب دَ نيل كښې ورغورزوو اوكه وئی نه غورزوو نو په درياب كښې اوبه نه راځی. مونږ داسې كوو چه دَ دې مياشتې په دولسم تاريخ باندې يوه پيغله جينئی راواخلو چه دَ خپل مور پلار يوه لور وی دَ هغې پلار مور له څه وركړو رضائی كړو اوهغې ته ډيرې قيمتی كپړې اوښكلې كالی وغيره واچوو اودَ ښه ښائسته كولونه پس ئی په دې درياب كښې وراچوو نودَ دې اوبه روانې شی ګنې اوبه هډو راخيژی نه. سپه سالار اسلام حضرت عمرو بن عاص ﷺ فاتح مصر جواب وركړو چه دا يودَ جاهلانو او بې وقوفانو رسم دې اسلام دَ دې اجازت نه وركوی. اسلام خودَ داسې عادتونودَ ختمولودَ پاره راغلې دې. تاسو داسې نه شئی كولې هغوی رامنع

شو د نیل د دریاب اوبه راونه ختې میاشت تیره شوه خو دریاب اوچ پروت دې. خلق تنګ شو اوارادې نې اوکړې چه مصر پریږدی د دې خایٔ استوګنه پریږدی. اوس د فاتح مصر داخیال راتیریږی اود خلافت دربارته خبر لیګی. هم هغه وخت د خلیفة المسلمین امیرالمؤمنین حضرت عمر بن خطاب ﷺ د طرف نه جواب ملاویږی تاچه څه اوکړه نو ښه دې اوکړه اوس زه په دې خپل خط کښې یوه پرچه د نیل د دریاب باره کښې درلیګم ته دا واخله اوبه دریاب کښې اوغورزوه. حضرت عمرو بن عاص ﷺ دا پرچه کولاوکړه اوونی لوستله نو په دې کښې لیکلې وو چه داخط دې دالله تعالی د بنده امیرالمؤمنین د طرف نه د اهل مصر دریاب نیل طرف ته پس د حمد اوصلوة نه. خبره داده که ته په خپله مرضئ اود خپل طرف نه روان نې نوخیر دې مه روانیږه اوکه الله تعالی چه واحداوقهاردې تاروانوی نومونږ د الله تعالی نه دعاغواړو چه تاروان کړې. داپرچه عسکر امیر په دریاب د نیل کښې اوغورزوله. اوس لا یوه شپه هم تیره نه وه چه په دریاب د نیل کښې شپاړس لاسه ښکته اوبه روانې شوې اوهم هغه وخت د مصر اوچ کالی په ترکالئی اوګرانی په ارزانئی سره بدله شوه. د خط سره تول خایونه شنه اوآباد شو اودریاب په پوره روانئی سره روان شو. دې نه پس چه هرکال به کوم بنیادم ورغورزولې شو هغه بچ شو اود مصر نه دا ناپاکه رسم د همیشه د پاره ختم شو. هم د دې آیت د مضمون آیت داهم دې. ﴿فَلْيَنْظُرِ الْإِنسَانُ إِلَىٰ طَعَامِهِ﴾ (۱)یعنی انسان دې خپل خوراك ته اوګوری چه مونږ باران نازل کړو اوزمکه مو اوشلوله غله اومیوې پیداکړې شو. اودغه شان نې دلته هم اوفرمائیل چه داخلق دې ته نه ګوری؟ حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی جرز هغه زمکه ده په کومه چه باران ناکافی وریږي. بیا هغه د لختو او نهرونوپه اوبوسره خړوب کیږی. مجاهد رحمه الله فرمائی دازمکه د یمن ده. حسن رحمه الله فرمائی چه داسې کلی په یمن او شام کښې دی. ابن زید رحمه الله وغیره قول دې چه داهغه زمکه ده په کومه چه پیداوار نه کیږی اود دوړو وی. په دې آیت کښې بیان فرمائیلې دې ﴿وَآيَةٌ لَّهُمُ الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ أَحْيَيْنَاهَا وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا فَمِنْهُ يَأْكُلُونَ﴾ (۲) د دوی د پاره مړه زمکه هم یوه نښه ده کومه چه مونږ ژوندنې کوو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيَقُولُونَ | مَتَىٰ | هَٰذَا الْفَتْحُ | إِن كُنتُمْ | صَادِقِينَ ﴿٢٨﴾ | قُلْ |
| او وائي دویٔ | کله به وی | دافتح (فیصله) | که یئ تاسو | رښتینی | ورته اووایه |

او دویٔ وائی که تاسو ریښتونی یئ نو اوښائي چي دا آخری فیصله به کله وی | ورته اووایه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ الْفَتْحِ | لَا يَنفَعُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | إِيمَانُهُمْ |
| په ورځ دفیصلي به | فائده اونهٔ رسوی | هغه کسانوته | چي کفر ئې کړي دي | ایمان راوړلو هغویٔ |

د فیصلي په ورځ به کافرانو ته ایمان هیڅ فائده نه ورکوی | اونه به ورته څه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | هُمْ | يُنظَرُونَ ﴿٢٩﴾ | فَأَعْرِضْ | عَنْهُمْ | وَانتَظِرْ |
| اونهٔ به | هغویٔ ته | مهلت ملاویږی | پس اوګرزوه مخ | ددویٔ نه | او انتظار کوه ته |

مهلت ورکړې شي | ............ نو ته ددویٔ دوینا خیال مه ساته | او(دحق دغلبي) انتظار کوه

| | |
|---|---|
| إِنَّهُم | مُّنتَظِرُونَ ﴿٣٠﴾ |
| بیشکه دویٔ هم | انتظار کونکی دی |

دویٔ هم (لګیا دی) انتظار کوی

(۱) ۸۰/عبس: ۲٤.
(۲) ۳٦/یس: ۳۳.

**قوله تعالى:: وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ**

**کافرانو ته د قیامت د انتظار حکم:-** کافرانوبه په اعتراض کولوسره ونیل اې نبی داته چه مونږ ته وانې او خپل ملګری دې هم مطمئن کړی دی چه تاسو به په مونږ باندې فتح بیاموموئی اوزمونږ نه به بدله اخلئی نو هغه وخت به کله راځي؟ مونږ خود مودونه تا مغلوب ښکته او بې وقعته وینو پتیږې ویرېږې که ربښتونې نې نود خپلې فتح اوغلبې وخت خو اوښایه. الله تعالی فرمائي چه کله د الله تعالی عذاب راشی اوکله د هغه غصه او غضب نازل شی که په دنیاکښې وی که په آخرت کښې وی هغه وخت نه ایمان نفع ورکوی اونه مهلت ملاویږی. لکه چه ارشاد دې ﴿ فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَرِحُوا بِمَا عِندَهُم مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴾[1] یعنی کله چه هغوی له د الله تعالی پیغمبر ﷺ دلیلونه راوړل راغلونو دوی به خپل علم باندې ناز اوفخر کولو د پوره دوو آیاتونوپورې د دې نه د مکې فتح مراد نه ده. د مکې د فتح په ورځ خورسول الله ﷺ د کافرانو اسلام قبلول فرمائیلي وو اوتقریباً دوه زره کسان په هغه ورځ مسلمانان شوی وو. که په دې آیت کښې د مکې فتح مرادوه نو پکار ووچه د الله تعالی پیغمبر ﷺ د هغوی ایمان نه قبلولولکه چه په دې آیت کښې دی چه په هغه ورځ به د کافرانو اسلام قبلول نامنظور وی. بلکه دلته د فتح نه مراد فیصله ده. لکه چه قرآن پاك کښې دی ﴿ فَافْتَحْ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا وَنَجِّنِي وَمَن مَّعِيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾[2] زمونږ په مینځ کښې ته فتح اوکړه یعنی فیصله اوکړه. اولکه چه بل مقام کښې ارشاد دې ﴿ قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ ﴾[3] یعنی الله تعالی به مونږ راجمع کړی بیابه زمونږ په مینځ کښې فیصلې فرمائي. یوبل آیت کښې دی ﴿ وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ السَّمَاءِ ﴾[4] دافیصله غواړې سرکش اوضدیان تباه شو. بل ځای دی ﴿ مَعَهُمْ وَكَانُوا مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا فَلَمَّا جَاءَهُم مَّا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ فَلَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴾[5] دې نه وراندې به دوی په کافرانو باندې فتح غوښتله. بل آیت کښې د الله سبحانه وتعالی ارشاد دې إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴾[6] که ته د فیصلې خواهش مندئی نوواخله فتح راغله. بیافرمائي چه ته د دې مشرکانونه بې پرواه شه. کوم چه الله تعالی نازل کړی دی هغه رسوه. لکه چه په یوبل آیت کښې دی د خپل رب د وحی تابعداری کوه اود هغه نه بغیربل څوك معبود نشته. بیا فرمائي ته د خپل رب وعدې ربښتونې منه د هغه خبرې اټل دی. د هغه فرمان ربښتونې دې هغه به ډیر زر تا په خپلو مخالفینوباندې غالب کړی اوهغه د وعده خلافئی نه پاك دی. دوی هم په انتظاردی غواړی چه په تاسو باندې څه آفت راشی خود دوی داغوښتنې بې فائدې دی. الله تعالی خپل نه هیروی نه هغوی پریږدی. ښه ده چه څوك د الله تعالی په احکاموباندې کلك دی د الله تعالی خبرې نورو ته اورسوی اوهغوی به ایزدی تائید نه څنګه محروم کړې شي؟ دوی چه داځه په تا باندې لیدل غواړی هغه به هم په دوی باندې راکوزیږی. بدحالئی ماتې په چغوصورو اوفریاد کښې به راګیروی. د الله تعالی د عذابونو ښکار به وی. اووایه چه الله تعالی مونږ له کافی دې اوهم هغه بهترین کارسازدې.

**(الحمدلله)** د الله تعالی په فضل اوکرم اولطف اورحم سره د سورت سجده تفسیرختم شو.

---

[1] ٤٠/المؤمن:٨٣.

[2] ٢٦/الشعراء:١١٨.

[3] ٣٤/سبا:٢٦.

[4] ١٤/ابراهيم:١٥.

[5] ٢/البقرة:٨٩.

[6] ٨/الانفال:١٩.

## (تفسیرسورت احزاب)

حضرت زر ؒ دَ حضرت ابی بن کعب ؓ نه تپوس اوکړو چه دَ سورت احزاب څومره آیاتونه شمیرلې کیږی؟ نوهغوی اوفرمائیل درې اویا (۷۳). حضرت ابی ؓ اوفرمائیل چه نه نه ماخولیدلې دی چه داسورت دَ سورت بقره سره نیزدې نیزدې وو. هم په دې کښې به هم دا آیت لوستلې کیدو.((الشیخ والشیخة اذا زنیا فارجموهما البتة نکالا من الله والله عزیزحکیم)) یعنی کله چه بوډا سړې او بوډئی ښځه بدکاری اوکړی نوهغه ضرور سنګسار کړی دا سزا دَ الله تعالی دَ طرف نه ده الله تعالی ډیر غالب اوحکمت والا دې. (١) دَ دې نه معلومیږی چه دَ دې سورت نه څه آیاتونه دَ الله تعالی په حکم سره اخواکړې شو. والله اعلم.

| ایاتونه | | | رکوع ګاني |
|---|---|---|---|
| | سورة الاحزاب مدنية وهي ثلاث وسبعون اٰية وتسع ركوعات | | |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ⑦ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ⑨ |
| | يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ | | |
| | اے نبی \| او یریږه دالله نه \| او مه منه خبره دکافرانو \| او دمنافقانو \| بیشکه الله | | |
| | ائې نبی ﷺ ته د الله ﷻ نه ویره کوه \| اودکافرانو اومنافقانو خلقو تابعداری مه کوه \| بیشکه الله ﷻ | | |
| | كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۙ ﴿۱﴾ وَّاتَّبِعْ مَا يُوْحٰۤى اِلَيْكَ | | |
| | دې عالم په هر څه \| ښه حکمت والا \| او پیروی کوه \| دهغه خبری \| چې دکومې وحی کیږی \| تاته \| | | |
| | ډیر ښه پوهه او صاحب دحکمت دې \| اودخپل رب نه چې درته کومه وحی کیږی \| ........ | | |
| | مِنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ۙ ﴿۲﴾ | | |
| | دطرفه درب ستا نه \| بیشکه الله \| دې \| په هغه کارونو \| چې کوئ ئې تاسو \| ښه خبردار \| | | |
| | ........ \| دهغې تابعداری کوه \| بیشکه الله ﷻ ستاسو په کارونو خبر دې | | |
| | وَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۳﴾ | | |
| | او توکل کوه \| په الله باندې\| او کافی دې \| الله \| کار جوړونکې \| | | |
| | اوپه الله ﷻ بهروسه کوه \|... او هم هغه الله ﷻ کافی کارساز دې \| | | |

**قوله تعالی:: يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللّٰهَ**

**خطاب نبی ﷺ ته دې او مراد ترې امت دې:-** دَتنبیه یوموثرصورت داهم دې چه لوئ ته وایه وړوکې به هوښیاریږی. کله چه الله تعالی خپل نبی ﷺ ته څه خبره په زور اوتاکید سره کوی نوښکاره خبره ده چه په نورو باندې به دغه زور او تاکید نور هم زیات وی. تقوی دې ته وائی چه دَ الله تعالی دَ هدایت مطابق دَ ثواب دَ غوښتو په نیت سره دَ الله تعالی دَ حکم تابعداری اوکړې شی اودَ الله تعالی دَ حکم مطابق دَ هغه دَ عذابونونه دَ بچ کیدو دَ پاره دَ هغه نافرمانئی پریخودې شی. دَ کافرانو اومنافقانو خبرې مه منه اومه دَ هغوی په مشورو باندې کاربندکیږه او مه دَ هغوی خبرې دَ قبلیدو په اراده اوره. **دعلم اوحکمت مالك هم الله تعالی دې.** هغه په خپل وسیع علم سره دَ هر کار نتیجه پیژنی اودَ خپل ډیر

(١) عبدالله بن احمد ل زوائده:۱۳۲/۵ وسنده حسن، الکبری:۷۱۵، ابن حبان:۴۴۲۹، مسندالطیالسی:۵٤٠. (مسنداحمد)

زيات حكمت په وجه د هغه هيڅ يوكار بغيرد حكمت نه نه وي ته خو هم د هغه تابعداري كوه دې د پاره چه دَ خراب انجام او وراني نه بچ شې. كوم قرآن اوسنت چه ستا طرف ته وحي كولې شي دَ هغې تابعداري كوه اودَ الله تعالى هيڅ يوڅيزهم پټ نه دې.

**په الله تعالى باندې توكل ساته ::** په خپلو ټولو امورو اوكارونوكښې په الله تعالى باندې يقين ساته. په هغه باندې دَ يقين ساتونكودَ پاره هغه كافي دې. ځكه چه هغه په ټولوكارونو سازولوباندې قادر دې. دَهغه طرف ته ټيټيدونكې كامياب اوهم كامياب دې.

مَا جَعَلَ اللّٰهُ

| نه دی پيدا كړی | الله |

| ..................الله ﷻ دهيچا

لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ ۚ وَمَا جَعَلَ اَزْوَاجَكُمُ

يو سړی لره | دوه زړونه | په دننه بدن دهغه كښې | اونه دی ګرځولی | ښځې ستاسو |

په سينه كښې دوه زړونه نه دی پيدا كړي | اوتاسو چې دكومو ښځو نه ظهار اوكړئي

الّٰٓـِٔيْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ وَمَا جَعَلَ

هغه ښځې | چې تاسو ظهاركوئ | دهغوئ سره | ميندې ستاسو | اونه ئې دی جوړ كړی |

هغه ئې ستاسو ميانديې نه دی ګرځولې | اونه ئې ستاسو په خوی توب سره نيولی هلكان (په رښتيا)

اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ۭ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ۭ

دخلې بللې خامن ستاسو | حقيقي خامن ستاسو | داخبری دی ستاسو | په خلو ستاسو |

ستاسو حقيقي خامن ګرځولی دی | .........................داخو هسې ستاسو دخلې خبرې دی

وَاللّٰهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيْلَ ۝ اُدْعُوْهُمْ لِاٰبَآئِهِمْ

او الله | وائي | حق | او هغه | ښائي | لاره صحيح | رابلئ دوئ | پلارانو خپلو ته |

او الله ﷻ حقه خبره كوی|او هغه نيغه لار ښائي |..........دغه هلكان دخپلو پلارانو په نومونو بلئ

هُوَ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ لَّمْ تَعْلَمُوْٓا اٰبَآءَهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ

دا ډيره دانصاف خبره ده |په نز دالله |اوكه معلوم نهٔ وی تاسو ته |پلاران ددوئ |پس دوئ رونړه دی ستاسو

دا خبره د الله ﷻ په نزد ډيره دانصاف ده| نوكه تاسو ئې پلاران نه پيژنئ |نو هغوئ ستاسو ديني رونړه

فِي الدِّيْنِ وَمَوَالِيْكُمْ ۭ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيْمَآ

په دين كښې | او دوستان دی ستاسو | او نشته په تاسو باندې | ګناه | په هغې كښې |

او دوستان دی | ...........................اوكه په دې كښې درنه څه غلطي اوشي |نو هيڅ ګناه

اَخْطَاْتُمْ بِهٖ ۙ وَلٰكِنْ مَّا تَعَمَّدَتْ قُلُوْبُكُمْ ۭ

چې خطاشئ تاسو|په هغې |اوليكن شته ګناه |په هغې كښې |چې دكومې اراده اوكړی |زړونه ستاسو

درباندې نشته | خو ګناه په هغه صورت كښې ده | چې څه تاسو د زړه په اراده سره اوكړئي

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَكَانَ اللّٰهُ | غَفُوْرًا | رَّحِيْمًا۟ | |
| او دي الله | بښونکي | مهربانه | |
| او الله ﷻ بښونکي او مهربان دي | | | |

قوله تعالى: مَا جَعَلَ اللّٰهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ

دَ چا نه اخستې شوې حقيقي خوني نه شي جوړيدې :- دَ مقصدبيانولونه وړاندې دَ مقدمې اوثبوت په توګه مثلأيوه خوني هغه خبره بيان کړه کومه چه ټول محسوس کوی اوبيادهغې نه ذهن اخواکولوسره دَ مقصدطرف ته اوړی. ارشاد فرمائي چه داخوښکاره خبره ده چه دَ يوانسان زړونه هم دوه نه وی دغه شان تاسو پوهه شئي چه کومې خپلې ښځې ته ته مور اووائې نوهغه واقعي مور نه جوړيږی. ټيك هم دغه شان دَ بل چا اولاد خپل خوئ جوړولوسره هغه دَ رښتياوځوئ نه جوړيږی. که خپلې ښځې ته سړی په حالت دَ غصې اوغضب کښې اووئيل چه ته په ماداسې ئي لکه زما دَ مور دَ شا نوبه دې وينا کولو سره هغه دَ رښتياوَمور نه جوړيږی. لکه چه ارشاد دي ﴿مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ۗ اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰٓـئِيْ وَلَدْنَهُمْ ۗ وَاِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا ۗ وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ۝﴾ [1] يعنی داسې وئيلوسره هغوی میندې نه جوړيږی. مورخو هغه ده دَ چا دَ خيټې نه چه دې پيداشوې دې. دَ دې دواړو خبرو بيانولونه پس ئې اصل مقصدبيان اوفرمائيلو چه ستاسو ساتلې شوې هلکان هم ستاسو حقيقي اولاد نه شي جوړيدې.

قوله تعالى: وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ۭ

دَ ايت مبارک شان نزول څوک دی؟: دا آيت دَحضرت زيدبن حارثه رضی الله عنه په باره کښې نازل شوې دې. چه دَ حضور ﷺ آزادکړې شوې وو حضور ﷺ دَ نبوت نه وړاندې په خپل خوئ ولې نيولې وو. هغه ته به زيدبن محمد ﷺ وئيلې کيدو. په دې آيت سره دا نسبت او دارشته ماتول منظور دی لکه چه دَ دې سورت په شروع کښې دی ﴿مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا﴾ [2] په تاسوکښې دَ يو سړی هم محمد ﷺ پلار نه دې بلکه هغه دَ الله تعالى رسول ﷺ او خاتم النبيين دې اوالله تعالى ته دَهريوخيز علم دې. دلته فرمائي چه داخوستاسو يوه زبانی خبره ده چه تاسو دَ چا خوئ ته دَ بل چاخوئ وائې په دې سره خو حقيقت بدليدې نه شي. په اصل کښې خودَ هغه پلار هغه دې دَ چا شانه چه دې راوتلې دې. داناممکن دی چه دَ يوسړی دوه پلاران وی. لکه څنګه چه داناممکن ده چه په يوه سينه کښې دوه زړونه وی. الله تعالى حق فرمائيلوالا او نيغه لارخودونکې دې.

بعضې خلق وائي چه دا آيت دَ يوقريشي باره کښې نازل شوې دې کوم چه مشهوره کړې وه چه دَ هغه په سينه کښې دوه زړونه دی اودَ دواړه دعقل اوپوهې نه ډك دی. الله تعالى دَ دې خبرې غندنه اوکړه. دَ حضرت ابن عباس رضی الله عنه بيان دې حضوراکرم ﷺ په مانځه ووهغه ته څه خطره محسوس شوه نو په دې باندې چه کوم منافقان په مانځه کښې وو هغوې وئيل ګوره دَ ده دوه زړونه دی يوتاسو سره يوهغه سره. په دې باندې دا آيت نازل شو چه الله تعالى دَ چا په سينه کښې دوه زړونه نه دی ايخودې.

زهری رحمه الله فرمائي چه داخوصرف دَ مثال په توګه فرمائيلې شوی دی يعنی څنګه چه دَ يوسړی دوه زړونه نه وی. [3] دغه شان دَ يوخوئ دوه پلاران نه شي کيدې. هم دَ دې مطابق مونږ هم دَ دې تفسير کړې دې. والله سبحانه وتعالى اعلم. اول خودا رخصت وو چه دَ چانه اخستې شوې هلك نسبت پالونکی طرف ته کولوسره خوئ وئيلې شو خواوس اسلام دا ختم کړو اووئي فرمائيل چه دهغوی کوم حقيقي

---

[1] ۵۸/المجادلة:۲.

[2] ۳۳/الاحزاب:۴۰.

[3] ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الاحزاب:۳۱۹۹، ، احمد:۱/۱۶۸،

پلاران دی د هغوی طرف ته نی نسبت کولوسره رابلنې، عدل انصاف نیکی او نیغه لار هم دغه ده.
حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی چه د دې آیت د نازلیدلونه وړاندې به مونږ (حضرت زیدﷺ) ته زیدبن محمدﷺ ونیلو خودَ دې دَ نازلیدلونه پس مونږ دا وینا کول پریخوده. (۱) بلکه اول خودَ داسې اخستې شوی هلك هغه ټول حقوق وو کوم چه به دَ سکه اوحقیقی اولاد وو. دَ دې آیت دَ نازلیدونه پس حضرت سهله بنت سهیل رضی الله عنها دَ حضورﷺ په خدمت کښې حاضره شوه عرض ئې اوکړو یارسول اللهﷺ مونږ سالم خپل ځوئ جوړکړې وو اوس خو قرآن پاك دَ هغه باره کښې فیصله اوکړه. ما دَ اوسه پورې دَ هغه نه پرده نه کوله هغه به تلوراتلو. خوزما خیال دې چه زماخاوندحضرت حذیفه ﷺ دَ هغه په داسې تلوراتلو باندې خفه دې. حضورﷺ اوفرمائیل چه بیاځه دی خولاره شه اوسالم له خپل پئی ورکړه په هغه باندې به حرامه شې. (۲) الغرض داحکم منسوخ شو اوس په صفاالفاظوکښې دَ داسې هلکانو دَ ښځو حلت دَهغوی خامن جوړونکودَ پاره بیان اوفرمائیلو او کله چه حضرت زیدﷺ خپله بی بی صاحبه حضرت زینب بنت جحش رضی الله عنها ته طلاق ورکړو نوحضورﷺپخپله دَ هغې سره نکاح اوکړه اومسلمانانو دَ دې یوګران کار نه هم خلاص شو. فالحمدلله. هم دَ دې لحاظ ساتلو سره چه چرته دَ حرامو ښځو ذکر اوکړې شو نو هلته اوفرمائیلې شو ﴿ وَحَلَٰٓئِلُ أَبۡنَآئِكُمُ ٱلَّذِينَ مِنۡ أَصۡلَٰبِكُمۡ وَأَن تَجۡمَعُواْ بَيۡنَ ٱلۡأُخۡتَيۡنِ إِلَّا مَا قَدۡ سَلَفَۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴾ (۳) یعنی چه ستاسو دَ خپلې نطفې نه کوم هلکان وی نودَ هغوی ښځې په تاسو حرام دی اودغه شان رضاعی خامن دَ نسبی او خاندانی په حکم کښې دی. لکه چه دَ بخاری اومسلم په حدیث کښې دی چه په رضاعت سره هغه ټولې رشتې حرام کیږی کومې چه په نسب باندې حرامې وی. (۴) داهم یادساتئی چه دَ مینې نه یوکس ته ځوئ ونیل دایوبل خیز دې دامنع نه دی.
مسنداحمدوغیره کښې دی ابن عباس ﷺ فرمائی چه مونږ دَ عبدالمطلب دَ ټول خاندان واړه ماشومان دَ مزدلفه نه رسول اللهﷺهم دَ شپې دَ جمراتو طرف ته رارخصت کړو اوزمونږ پنډئی ټپولو سره حضورﷺ اوفرمائیل زمابچو دَ نمر دَ راختلونه وړاندې جمرات په کاڼو باندې مه اولئی. (۵) داواقعه دَ لسم هجری د ذی الحجه دَ میاشت ده اودَ دې دلالت ښکاره دې. حضرت زید بن حارثه ﷺ دَ چا باره کښې چه دا حکم نازل شوېه اتم کال دَ هجرت په جنګ موته کښې شهیدشو. په صحیح مسلم کښې روایت دې چه حضرت انس ﷺ ته رسول الله ﷺ خپل ځوئ ونیلو سره راوبللو. (۶) دَ دې بیانولوسره دَ نورو نه اخستې شوی هلکانَ دَ خپل پلارطرف ته په نسبت کولوسره رابلئی نه دَ پالونکو طرف ته. بیافرمائی چه چرې تاسو ته دَ دوی دَ پلارانو علم نه وی نوهغوی ستاسودینی رونړه او دوستان دی.
**دحمزه ﷺ د لونړو د کفالت تذکره او د رسول کریم ﷺ فیصله:** حضور نبی کریم ﷺ چه کله دَ عمرة القضاء په کال دَ مکې مکرمې نه راواپس شو نودَ حضرت حمزه ﷺ لونړو به کاکا کاکا کولوسره حضورﷺ پسې شاته منډې وهلې. حضرت علی ﷺ دا واخستې اوحضرت فاطمه رضی الله عنها ته ئی ورکړې اوونی فرمائیل چه دا ستا دَ تره لونړه دی دوی په ښه شان سره اوساته. حضرت زید ﷺ اوحضرت جعفر ﷺ اوفرمائیل دَ دې ماشومانو حقدار مونږ یودوی به هم مونږ پالو. حضرت علی ﷺ فرمائیل چه نه دا به ماکره وی.

---

۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب ﴿ادعوهم لاباتهم هواقسط عندالله﴾:۴۷۸۲، صحیح مسلم:۲۴۲۵،ترمذی:۳۲۰۹.
۲) صحیح مسلم کتاب الرضاع باب رضاعة الکبیر: ۱۴۵۳، ابوداؤد:۲۰۶۱، ابن حبان:۴۲۱۴ بتصرف یسیر. الخ.
۳) ۴/النساء:۲۳.
۴) صحیح بخاری کتاب الشهادات باب الشهادة علی‌الانساب والرضاع:۲۶۴۵، صحیح مسلم:۱۴۴۷.
۵) ابوداؤد کتاب المناسك باب التعجیل من جمع:۱۹۴۰، نسائی:۳۰۶۶، ابن ماجه:۳۰۲۵، احمد:۲۳۴/۱.
۶) صحیح مسلم کتاب الادب باب جواز قوله لغیر ابنه یابنی....:۲۱۵۱، ابوداؤد:۴۹۶۴، ترمذی:۲۸۳۱.

جعفر ﷺ بن ابی طالب ونیل نه زما دتره لونړه دی ماسره به وی اود دوی خاله زما کره ده یعنی حضرت اسماء بنت عمیس ﷝. آخر حضور ﷺ دافیصله اوکړه چه دالونړه دې خپلې تروړسره وی ځکه چه ترور دَ مور په ځایَ وی حضرت علی ﷺ ته نی اوفرمائیل ته زما نی اوزه ستایم. حضرت جعفر ﷺ ته نی اوفرمائیل ته په صورت اوسیرت کښې زما په شان نی.

حضرت زید ﷺ ته نی اوفرمائیل چه ته زمونږ رور اوزمونږ مولی نی. (۱) په دې حدیث کښې ډیرزیات احکام دی دَ ټولونه بهترخودا دی چه حضور ﷺ خوحق حکم واورولو اودعوی کونکی نی هم خفه نه کړل اوحضور ﷺ هم په دې آیت باندې عمل اوکړو اوحضرت زید ﷺ ته نی اوفرمائیل ته زمونږ رور اوزمونږ دوست نی. حضرت ابوبکر ﷺ اوفرمائیل هم دَ دې آیت لاندې زه ستاسو رور یم. حدیث مبارك کښې دی چه کوم سړې په قصدسره خپل نسب دَ خپل پلار نه دَ بل چا طرف ته اوکړی هغه کفر اوکړو. (۲) دَ دې نه سخت وعیدمونډلې شی اوثابتیږی دَ صحیح نسبت نه خپل خان اخواکول ډیره لویه کبیره گناه ده. بیا فرمائی چه تاسو پخپله چه تاسوکښې خومره طاقت دې اوبه تحقیق سره مو دَ چانسبت دَ چاسره کړو اوبه حقیقت کښې هغه نسب غلط وی نو په دې خطاباندې ستاسو رانیول نشته. دغه شان پخپله الله تعالی مونږ ته دَ دعاتعلیم راکړو چه مونږ دَ هغه په حضور کښې اووایو﴿ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِ ۖ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا ۚ أَنتَ مَوْلَانَا فَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴾ (۳) اې الله مونږه په هیره اوخطا غلطی مه رانیسه. دَ صحیح مسلم په حدیث شریف کښې دی کله چه مسلمانانو دادعا اولوستله نوالله تعالی اوفرمائیل چه ما داقبوله کړه. (۴) په صحیح بخاری کښې دی چه کله حاکم په خپل کوشش کښې کامیاب شی اوبه خپل اجتهاد کښې صحت ته اورسی نوهغه ته دوه چنده اجرملاویږی اوکه خطااوکړی نوهغه ته یواجر ملاویږی. (۵) یوبل حدیث کښې دی الله تعالی زما امت ته خطاګانې هیره اوکوم کار چه دَ هغوی نه په زور سره اوکړې شی هغوی معاف کړی دی. (۶) دلته نی هم دا فرمائیلو سره اوفرمائیل کوم کارچه په قصد اواراده دَ زړه سره کوئی هغه بې شکه دَ راګیرولو قابل دې. دَ قسمونوباره کښې هم داحکم دې. پورته چه کوم حدیث بیان شوی دې چه نسبت بدلونکی دَ کفر ارتکاب کړې دې هلته هم دالفظ دې چه سره دَ پیژندګلو. دَ قرآن پاك آیت چه اوس تلاوتًا منسوخ شوې دې په هغې کښې وو((فان كفرابكم ان ترغبوا عن اباءكم)) یعنی ستاسودَ خپل پلار نه نسبت اړول کفردې. حضرت عمر ﷺ فرمائی الله تعالی زمونږ پیغمبر ﷺ په حقه سره رالیګلې دې هغوی سره نې کتاب نازل کړې دې په دې کښې دَ رجم هم آیت دې حضوراکرم ﷺ پخپله هم رجم کړې دې (یعنی واده کړی زناکارسنګسارول) اومونږ هم دَ حضور ﷺ نه پس رجم کړې دې. مونږ په قرآن پاك کښې هم دا آیت لوستلې دې دَ خپلو پلارانودَ خپل نسب سلسله مه اخواکونې ځکه چه داکفر دې. دَ حضور ﷺ ارشاد مبارك دې ماتاسو په خپلو تعریفونوکښې دومره اوچت اوزیات مه یادونې لکه چه دَ عیسی ﷺ بن مریم علیهاالسلام سره چه اوشو. زه خو دَ الله تعالی بنده یم نوتاسوهم ماته دَ الله تعالی بنده اورسول الله وائې. په یوروایت کښې صرف ابن مریم علیهاالسلام دې.

---

(۱) صحیح بخاری کتاب الصلح باب کیف یکتب هذاماصالح.....:۲۶۹۹، احمد:۲۹۸/٤،ابن حبان:٤٤٨٧٣.

(۲) صحیح بخاری کتاب المناقب باب نمبر:۵ حدیث:۳۵۰۸، صحیح مسلم:۶۱.

(۳) ۲/البقرة:۲۸۶.

(۴) صحیح مسلم کتاب الایمان باب بیان تجاوز الله تعالی عن حدیث النفس والخواطر.....:۱۲۶.

(۵) صحیح بخاری کتاب الاعتصام باب الحجة علی من قال......:۷۳۵۲، صحیح مسلم:۱۷۱۶.

(۶) ابن ماجه کتاب الطلاق باب طلاق المکره والناسی:۲۰٤۳وهوصحیح بالشواهد.

(۱) یوبل حدیث کښې دی په خلقو کښې درې خصلتونه دی چه کفر دې. په نسب کښې پیغورونه ورکول په مړی باندې ژړا اود ستورو نه د باران غوښتنه. (۲)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلنَّبِىُّ | اَوْلٰى | بِالْمُؤْمِنِيْنَ | | |
| نبی ﷺ | دیر لائق دې | دمومنانو سره | | |
| نبی ﷺ په مومنانو باندې ژړا د هغوئ دخپلو خانونو | | | | |
| مِنْ اَنْفُسِهِمْ | وَاَزْوَاجُهٗٓ | اُمَّهٰتُهُمْ ؕ | وَاُولُوا الْاَرْحَامِ | |
| دهغوئ دخپل ذات نه هم | او ښځې دنبی ﷺ | میندې دهغوئ دی | او خاوندان دخپلوئ | |
| نه هم زیات حق لري | ............اوددهٔ بیبیانې دمسلمانانو میاندې دی او خپل خپلوان | | | |
| بَعْضُهُمْ | اَوْلٰى | بِبَعْضٍ | فِىْ كِتٰبِ اللّٰهِ | مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ |
| خینې ددوئ | زیات لائق دی | دخینو نورو سره | په کتاب دالله کښې | دمومنانو نه |
| دالله ﷻ په کتاب کښې دنورو (عامو) مسلمانانو اومهاجرینو په مقابله کښې | | | | |
| وَالْمُهٰجِرِيْنَ | اِلَّآ اَنْ | تَفْعَلُوْٓا اِلٰٓى اَوْلِيٰٓئِكُمْ | مَّعْرُوْفًا ؕ | |
| اودمهاجرینو نه | مګر دا | چې اوکړی تاسو ددوستانو خپلوسره | څه احسان (ښیګړه) | |
| زیات تعلق لري خو که تاسو خپلو دوستانو سره څه نیک سلوک کول غواړئ نو کولې شئ | | | | |
| كَانَ ذٰلِكَ | فِى الْكِتٰبِ | مَسْطُوْرًا ۝ | | |
| دې دا حکم | په کتاب کښې | لیکلې شوې | | |
| داخبره په لوح محفوظ کښې لیکلې شوې ده | | | | |

قوله تعالى:: اَلنَّبِىُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ

**د رسول الله ﷺ په خپل امت باندې مهربان کیدل:-** الله تعالی رب العزت وحده لاشریك له ته علم دې چه حضوراکرم ﷺ په خپل امت باندې د خپلو خانونونه هم زیات مهربان دې د دې دپاره ئې حضور ﷺ نه د هغوی د خانونونه هم د زیات اختیار اوکړو. دادې د خپل خان د پاره تجویزکوی نه بلکه د رسول الله ﷺ هریوحکم په زړه او خان سره قبول کړنی لکه چه فرمائی ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ حَتّٰى يُحَكِّمُوْكَ فِيْمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوْا فِىْٓ اَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا ۝﴾ (۳) ستاد رب تعالی قسم چه دا به مومنان نه وی ترکومې چه په خپل مینځ کښې په ټولو اختلافاتوکښې ستا حکم اونه منی. اوستاټولې فیصلې اوحکمونه په زړه اوخان په رونړتندی باندې قبول کړی. په صحیح حدیث مبارك کښې دی د هغه قسم د چا په لاس کښې چه زما خان دې په تاسوکښې یوکس هم په ایمان نه شی کیدې ترکومې چه زه د هغه د پاره د هغه د نفس نه د هغه د مال نه د هغه د اولاد نه اود دنیاد ټولوخلقو نه زیات محبوب نه شم. (۴)

(۱) احمد: ۴۷/۱، صحیح بخاری کتاب الحدود باب رجم الحبلی فی الزنااذا احصنت: ۶۸۳۰.
(۲) صحیح مسلم کتاب الجنائز باب التشدید فی النیاحة: ۹۳۴، ابن ماجه: ۱۵۸۱، احمد: ۳۴۲/۵، مسندابی یعلی: ۱۵۷۷،
(۳) ۴/النساء: ۶۵.
(۴) صحیح بخاری کتاب الایمان باب حب الرسول ﷺ من الایمان: ۱۵، صحیح مسلم: ۴۴، مسندابی عوانه: ۳۳۰/۱، احمد: ۱۷۷/۳، ابن ماجه: ۶۷، ابن حبان: ۱۷۹، بدون ذکر (من نفسه).

په يوبل حديث كښې دي حضرت عمر ﷺ اوفرمائيل يارسول الله ﷺ تاسو ماته د ټول جهان نه خوښ نې اوزما د خپل خان نه. حضور ﷺ اوفرمائيل نه نه عمر ترکومې چه زه تاته ستاد خپل خان نه هم زيات محبوب نه شم. دې اوريدو سره فاروق اعظم ﷺ اوفرمائيل د سم دې په الله تعالى يارسول الله ﷺ اوس نه ماته د هريوخيز نه تردې چه زما د خپل خان نه هم ډيرخوښ نې. حضور ﷺ اوفرمائيل اوس ټيک ده. (۱) بخاري شريف كښې د دې آيت په تفسيركښې دي حضور ﷺ فرمائي د ټولومومنانوزيات حقدار په دنيااواخرت كښې پخپله د هغوى د خپلو خانونونه هم زه زيات يم. كه تاسو غواړئ نو اولولئ ﴿ النَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ ۖ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ ۗ وَأُولُو الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُهَاجِرِينَ إِلَّا أَن تَفْعَلُوا إِلَىٰ أَوْلِيَائِكُم مَّعْرُوفًا ۚ كَانَ ذَٰلِكَ فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا ﴾ (۲) واورئ كوم مسلمان چه مال پريږدى مړشى د هغه مال خود هغه د وارثانوحصه ده اوكه څوك مړشو اود هغه په ذمه باندې قرض وو اود هغه واره واړه بال بچ وى نود هغه قرض زه ذمه وار يم اود هغه ماشومانوپالنه زما په ذمه ده. (۳)

قوله تعالى:: وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ

**د ازواج مطهرات د ميندو كيدو مطلب:** بيا فرمائي د رسول اكرم ﷺ بيبيانې مطهرات رضي الله عنهن حرمت او احترام كښې عزت اواكرام كښې بزرګئ اواعظام كښې په ټولومسلمانانوكښې داسې دي لكه پخپله د هغوى خپلې ميندې. اود مور نور احكام مثلاً خلوت يا د هغوى د لونړو خويندو سره د نكاح حرمت دلته ثابت نه دي. بعضې علماؤ د هغوى لونړه هم د مسلمانانو خويندې ليكلې دى لكه چه امام شافعي رحمه الله په مختصركښې نصاً فرمائيلى دى خودا د عبارت اطلاق دې نه چه د حكم اثبات. حضرت معاويه ﷺ چه د يوې ام المؤمنين رور وو هغه ته ماما وئيلې شى كه نه؟ په دې كښې اختلاف دې امام شافعي رحمه الله وئيلى دى چه وئيلې شي. پاتې شوه داخبره چه رسول الله ﷺ ته ابوالمؤمنين وئيلى شى كنه؟ داخيال ساتئى چه په ابوالمؤمنين كښې به مسلمانانې ښځې هم راشى په جمع مذكر سالم كښې په اعتبارد تغليب مونث هم شامل دې. د ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمان دې چه نه شى وئيلې.

د امام شافعي رحمه الله په دوارو اقوالوكښې د ټولونه صحيح قول هم دا دې. د ابى بن كعب اوحضرت ابن عباس ﷺ په قراءت كښې ﴿امهاتهم﴾ نه پس دا لفظ دې ((وهو اب لهم)) يعنى حضور ﷺ د هغوى پلار دې. د شافعي رحمه الله په مذهب كښې يوقول داهم دې اولړ شان تائيدد دې حديث نه هم كيدې شى چه حضور ﷺ اوفرمائيل زه ستاسو د پاره د پلار په ځائ يم زه تاسوته تعليم دركوم. واورئ تاسو كښې چه كله څوك د اودس ماتى د پاره لاړ شى نومه قبلې طرف ته مخ كوئى كيننى مه شاكوئى اونه په خپل ښى لاس باندې لوټې اخلئى اونه په ښى لاس باندې اودس كوئى. حضور ﷺ به د دريو لوټو اخستلو د پاره فرمائيل او په سوټو اوهډوكوباندې به ئى د استنجاء نه ممانعت فرمائيلو. (۴) (نسائى) دويم قول دا دې چه حضور ﷺ ته پلار مه وائې ځكه چه په قرآن مجيد كښې دى ﴿ مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴾ (۵) حضوراكرم ﷺ په تاسو كښې د يوسړى هم پلارنه دې. بيافرمائي چه په نسبت د عامو مومنانو مهاجرين اوانصارود وراثت زيات حقدار خپلوان دى. د دې نه

---

۱) صحيح بخارى كتاب الايمان والنذور باب كيف كانت يمين النبى ﷺ: ۶۶۳۲.
۲) ۳۳/الاحزاب: ۶.
۳) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الاحزاب باب ﴿النبى اولى بالمؤمنين من انفسهم﴾: ۴۷۸۱، احمد: ۳۵۶/۲.
۴) ابوداؤد كتاب الطهارة باب كراهية استقبال القبلة عندقضاء الحاجة: ۸ وسنده حسن، نسائى: ۴۰، ابن ماجه: ۳۱۳.
۵) ۳۳/الاحزاب: ۴۰.

وراندې چه رسول الله ﷺ په مهاجرينو اوانصاروکښې کوم وخت رورولی قايم کړې وه هم د هغې په اعتبارسره به دوی دَ يوبل وارثان ګڼرلې شو اوقسمونه خوړلو سره به نې چه کوم دَ يو بل حليف جوړشوې وو دوی به هم په خپل مينځ کښې وراثت تقسيم کولو دا دې آيت منسوخ کړو. اول به چه انصاری مړ شو نودَ هغه رشته داران به وارثان نه وو بلکه مهاجر به وو. دَ کوم په مينځ کښې چه دَ الله تعالی رسول ﷺ رورولی قايمه کړې وه. (۱) دَ حضرت زبيربن عوام ﷺ بيان دې چه داحکم خاص زمونږ دَ مهاجرو اوانصارو باره کښې نازل شوې دې. مونږ چه کله مکه معظمه پريخوده اومدينې ته راغلو نومونږ سره ﷺ هم نه وو دلته په راتلوسره مونږانصارو سره رور ولی اوکړه. دوی ډير بهترين رونړه ثابت شو تردې چه دَ مرګ نه پس به دَ هغوی دَ مال وارثان هم مونږ وو. دَحضرت ابوبکر ﷺ رورولی حضرت خارجه بن زيد ﷺ سره وه. دَ حضرت عمر ﷺ فلانکی سره. دَ حضرت عثمان ﷺ يوزرقی سری سره وه. پخپله زما دَ حضرت کعب بن مالك ﷺ سره. دې زخمی شو اودا زخم هم ژور وو که هغه وخت دَ هغه وفات کيدلو نوزه به هم دَ هغه وارث جوړشوې ووم. بيا دا آيت نازل شو اودَ ميراث عام حکم زمونږ دَ پاره هم شو. (۲) بيافرمائی چه وراثت خودَ هغوی نه دې خوکه هسې تاسو دې خپلو مخلصانو دوستانوسره ښه سلوك کول غواړنې نوتاسو ته اختيار دې چه دَ وصيت په توګه هغه له څه ورکولې اخستلې شې. بيافرمائی چه دَ الله تعالی داحکم په دې کتاب کښې دَ اول نه ليکلې شوې وو په کوم کښې چه څه بدلون وغيره نه دی شوې. په مينځ کښې چه په رور ولئی کومه ورثه تقسيم کولې شوه داصرف دَ يوخاص مصلحت لاندې دَ يوخاص وخته پورې وو اوس دا اخواکړې شو اواصلی حکم ورکړې شو. والله اعلم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذْ | أَخَذْنَا | | | | |
| او ياده کړه کله چې | واغيسته مونږه | | | | |
| او هغه وخت چې مونږ دټولو پيغمبرانو | | | | | |
| مِنَ النَّبِيِّنَ | مِيثَاقَهُمْ | وَمِنْكَ | وَمِنْ نُوحٍ | وَإِبْرَاهِيمَ | وَمُوسَى |
| دټولو پيغمبرانونه | وعده دهغوئ | او ستا نه (هم) | او دنوح نه | او دابراهيم نه | او دموسی نه |
| نه وعده واخسته | ......او ستا نه هم او د نوح ﷺ او ابراهيم ﷺ او دموسی ﷺ | | | | |
| وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ | وَأَخَذْنَا | مِنْهُمْ | مِيثَاقًا | غَلِيظًا | |
| او دعيسی خوئ دمريم نه | او واغسته مونږه | دهغوئ نه | وعده | پخه محکمه | |
| او عيسی خوئې دمريم ﷺ نه هم | اوددې ټولو نه مونږه پوخ لوظ واخستلو. | | | | |
| لِيَسْئَلَ | الصَّدِقِينَ | عَنْ صِدْقِهِمْ | وَأَعَدَّ | | |
| دپاره ددې چې پوښتنه اوکړی | دربنتنو خلقو نه | په باره دصدق دهغوئ کښې | او تيار کړې دې الله | | |
| چې الله ﷻ د ريښتونو خلقو نه د هغوی د رښتياؤ په حق کښې تپوس اوکړی | ..........او د کافرانو | | | | |

(۱) صحيح بخاری کتاب الفرائض باب ذوی الارحام:۶۷۴۷.

(۲) حاکم:۴/۳۴۴-۳۴۵.

| | | |
|---|---|---|
| لِلْكٰفِرِيْنَ | عَذَابًا | اَلِيْمًا﴿۸﴾ |
| دپاره دکافرانو | عذاب | درد ناک |
| دپاره ئې دردناک عذاب تيار کړې دې | | |

قوله تعالى:: وَاِذْ اَخَذْنَا مِنَ النَّبِيّٖنَ

**د اولولعزم پيغمبرانو عليهم السلام اونورو انبياء کرامو نه عهد:-** فرمائی چه د دې پنځو اولوالعزم پيغمبرانو عليهم السلام نه اود عام انبياء کرامو نه مونږ د ټولونه عهداووعده اخستې وه چه هغوی به زما د دين تبليغ کوی په دې باندې به قايم وی په خپل مينځ کښې به د يوبل امداد اوتائيدکوی. اتفاق او اتحاد به ساتی هم د دې وعدې ذکر په دې ايت کښې دې ﴿ وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ۭ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰي ذٰلِكُمْ اِصْرِيْ ۭ قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ۭ قَالَ فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ﴿﴾ (۱) يعنی الله تعالی د نبی ﷺ نه قول او اقرار واخستو چه کوم کتاب اوحکمت تاله درکړم اواودې ليکم اوبيا ستاسره د کړې شوی څيز تصديق کونکې رسول الله ﷺ راشی نوتاسوضرور په هغه باندې ايمان راوړئی اود هغه امداد کوئی. اووايئی چه ستاسو د دې اقرار شته؟ اوزما په وړاندې د دې کلکه وعده کوئی؟ ټولو جواب ورکړو اوزمونږ اقرار دې الله تعالی اوفرمائيل بس اوس ګواه اوسيږی اوزه پخپله تاسو سره ګواه يم. دلته ئې د عامو پيغمبرانو ذکر کولو سره د خاص او جليل القدر پيغمبرانو نوموته ئې واخستل. دغه شان د هغوی نومونه په دې آيت کښې ﴿ شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا وَّالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ ۭ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ ۭ اَللّٰهُ يَجْتَبِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يَّشَاۗءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ﴿﴾ (۲) دلته د حضرت نوح عليه السلام ذکر دې چه په زمکه باندې د الله تعالی پيغمبرو. دحضرت محمد ﷺ ذکردې چه د ټولونه آخری پيغمبروو اوحضرت ابراهيم عليه السلام موسی عليه السلام اوحضرت عيسی عليه السلام ذکر دې. کوم چه درميانه (مينځنی) پيغمبرو. په دې کښې يولطافت دا دې چه د اول پيغمبر حضرت آدم عليه السلام نه پس پيغمبر حضرت نوح ذکر دې اود آخر پيغمبر حضرت محمد ﷺ نه اول پيغمبر حضرت عيسی عليه السلام ذکر اوکړو اود مينځ پيغمبرانونه حضرت ابراهيم عليه السلام اوحضرت موسی عليه السلام ذکر اوکړو. دلته خو ئې دا ترتيب کيخودو چه د فاتح اوخاتم ذکر کولوسره د مينځ د انبياء کرامو بيان اوشو اوپه دې آيت کښې د ټولونه اول د حضرت خاتم النبيين ﷺ نوم واخستلې شو. ځکه چه د ټولونه اشرف اوغوره هم هغوی دی. بيا وار په وار ځنګه چه راغلی دی هغه شان په ترتيب سره ئې بيان کړل. الله تعالی دې په خپلو ټولوانبياؤکرامو عليهم السلام باندې درود اوسلام نازل کړی.

د دې آيت په تفسيرکښې د حضور ﷺ فرمان دې د پيدائش په اعتبارسره زه د ټولوانبياء کرامو نه اول يم اودنياته د راتلوپه اعتبارسره د ټولونه آخری يم. نوهم زمانه ئې شروع کړې ده. داحديث په ابن ابی حاتم کښې دې خود دې يوراوی سعيدبن بشير ضعيف دې او په سندسره دامرسل روايت دې اوهم دا ډير مشابهت لری. اوبعضو دا موقوف روايت کړې دې. والله اعلم. حضرت ابوهريره ﷺ فرمائی د حضرت آدم عليه السلام په اولاد کښې الله تعالی ته د ټولونه زيات ګران اوخوښ پنځه پيغبران دی. حضرت نوح عليه السلام حضرت ابراهيم عليه السلام حضرت موسی عليه السلام حضرت عيسی عليه السلام اوحضرت محمد ﷺ. په دې کښې

۱) ۳/آل عمران: ۸۱.
۲) ۴۲/الشوری: ۱۳.

یوزراوی حمزه ضعیف دی داهم ونیلی شوی دی په دې ایت کښې چه کوم عهد اومیثاق ذکردې داهغه دې چه دَ ازل په ورځ دَ حضرت آدم ﷺ دَ شانه ټول انسانان راویستلې وو اخستې شوې وو دَ حضرت ابی بن کعب ﷺ نه روایت دې حضرت آدم ﷺ اوچت کړې شو هغوی خپل اولاد اوکتلو په هغوی کښې مالدار غریب ښانسته اوهرقسم خلق اولیدل نووني ونیل اې الله څومره به ښه وه چه دا ټول تا برابرساتلې وې. الله تعالی ﷻ اوفرمائیل چه دا په دې وجه دی چه زما شکر اداکړې شی. په دوی کښې چه کوم پیغمبران علیهم السلام وو حضرت آدم ﷺ هغوی هم اولیدل هغوی دَ نور په شان پړقیدل په هغوی باندې نور وریدلو دَ هغوی نه دَ نبوت او رسالت یوخاص وعده اخستې شوې وه. دَ کوم بیان چه په دې آیت کښې دې. دَ صادقون نه دَ هغوی دَ صدق سوال وی یعنی دَهغوی نه چه کوم احادیث رسول الله ﷺ رارسولې وو. (۱) دَهغوی دَ امتونونه چه کومو هم هغوی نه دی منلی هغوی ته به سخت عذاب وی. اې الله ته گواه اوسه زمونږ گواهی ده مونږ په زړه سره منوچه بې شکه ستا رسولانو ستا پیغام ستا بندیگانوته بغیردَ څه کمی زیاتئ نه رسولې دې. هغوی پوره خیرخواهی کړې ده اوحق نی په صفا توگه ښه په ښکاره طریقه سره واضح کړې دې. په کوم کښې چه څه هیڅ پټ پناه یادَ څه قسم شك باتې نه شو. اوبدنصیبه ضدی اوجنگالیانو خلقو اونه منل. زمونږ ایمان دې چه ستا دَ ټولو رسولانو ټولې خبرې حق او رښتیا دی اوکومو خلقو چه دَ دوی لار اونه نیوله هغوی گمراه او باطل دی.

| | | |
|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اذْكُرُوْا |
| اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | یاد کړئ |

اې ایمان والو ! دالله ﷻ احسان یاد کړئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| نِعْمَةَ اللّٰهِ | عَلَيْكُمْ | اِذْ جَآءَتْكُمْ | جُنُوْدٌ |
| نعمت (احسان) دالله | چې کړې ئې دې په تاسو باندې | کله چې راغلې تاسو ته | لښکرې |

څه وخت چې د(غزوه خندق په موقع) په تاسو باندې ډیر لښکرې راوختلې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاَرْسَلْنَا | عَلَيْهِمْ | رِيْحًا | وَّجُنُوْدًا | لَّمْ تَرَوْهَا | وَكَانَ اللّٰهُ |
| پس اولیږل مونږه | په هغوئ باندې | سیلئ | او لښکرې | چې نه لیدلې تاسو هغه | او دې الله |

نومونږ پرې یوه سیلئ راوستله اوداسې (غیبی) لښکرې مو راولیږلې چې تاسو نه لیدلې او تاسو چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | بَصِيْرًا ۞ | اِذْ | جَآءُوْكُمْ |
| په هغه کارونو | چې کوئ ئې تاسو | لیدونکې | کله چې | راغلل هغوئ په تاسو |

څه کول هغه الله تعالی لیدل څه وخت چې هغوئ ستاسو نه د پورته طرف نه او ستاسو دلاندې طرفنه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ فَوْقِكُمْ | وَمِنْ اَسْفَلَ | مِنْكُمْ | وَاِذْ | زَاغَتِ | الْاَبْصَارُ |
| دپاس طرف ستاسو نه | او دښکته طرف | ستاسو نه | او کله چې | خړ شو | نظر دسترگو |

په تاسو راوختل او (له ویرې نه) ستاسو سترگې بوتې راوتې وې.

۱) الطبری: ۲۰/۲۱٤.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَبَلَغَتِ | الْقُلُوبُ | الْحَنَاجِرَ | وَتَظُنُّونَ | بِاللَّهِ | الظُّنُونَا۝ |
| اوورسيدل | زړونه | چنغړ كونوته | او گمانونه اوكړل تاسو | په الله | قسماقسم گمانونه |
| او زړونه مو خلې ته راغلي وو او تاسو په الله ﷻ باندې رنګ رنګ ګمانونه كول | | | | | |

**قوله تعالى: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ**

**په جنګ خندق كښې دَ الله تعالى دَ نصرت نازليدل:-** جنګ خندق چه په ۵هجرى دَ شوال په مياشت كښې شوې وو الله تعالى چه په خپلو مؤمنانوباندې كوم خپل فضل او احسان كړې وو دَهغې بيان كولې شي. مشركانو په پوره طاقت او پوره يوموټې والى سره دَ مسلمانانودَ ختمولو په اراده يوزبردست لښكر سره حمله كړې وه. بعضې خلق وائى جنګ خندق په ۴ هجرى كښې شوې وو. (۱)

**دجنګ خندق قصه:** دَ دې جنګ قصه داسې ده چه دَ بنونضير دَيهوديانو سردارانو په كوموكښې چه سلام بن ابىحقيق، سلام بن مشكم، كنانه بن ربيع وغيره وو مكې ته راغله اوقريشو ته ئى چه دَ اول نه تياروو حضورﷺ سره دَ جنګ دَ پاره په تيارو باندې راضى كړل اوهغوى سره ئى وعده اوكړه چه مونږ به دَخپل اثر لاندې خلقو سره ستاسو په ډله كښې شامل يو. دَ دوى راضى كولونه پس داخلق دَ قبيله غطفان خلقو سره سازباز كولو سره خان سره شامل كړل. قريشو هم اخوادېخواګرځيدوسره په ټولوعربوكښې أور اولګولو اوټول ګډوډخلق ئى خان سره يوخاې كړل دَدوى ټولو سردار ابوسفيان بن صخر بن حرب جوړشو اودَ غطفان سردار عيينه بن حصن بن بدر مقرر شو. دې خلقو كوشش اوكړو دَ لسو زرو لښكرئې تياركړو اومدينې طرف ته لاړل. حضورﷺ ته چه كله دَ دې لښكر كښئى پته اولګيده.

**خندق د سلمان فارسى ﷺ په مشوره كنستلې شوې وو:** نوحضورﷺ دَ سلمان فارسى ﷺ په مشوره سره دَ مدينې په مشرقى طرف كښې خندق يعنى ژوره كنده اوكړه. دَدې خندق په كنستلوكښې ټولوصحابه كرامو ﷺ مهاجرين اوانصارشامل وو او پخپله به حضور پرنور ﷺ بذات اقدس حصه اخستله په كنستلوكښې هم او په خاوره ويستلوكښې هم.

**كافرانو د احد د غر سره پړاؤ واچولو:** دَ مشركانو لښكر بغيردَ څه مقابلې مدينې منورې ته راورسيدو او دَ مدينې په مشرقى حصه كښې دَ احد غر سره ئى خپله ډيره واچوله اولاندې باندې ئى مسلمانان راګيركړل. حضورﷺ دَ خپل ملګرو صحابه كرامو چه تقريباً درې زره به وو اويه بعضې رواياتوكښې صرف اووه سوه وو واخستل اودَ مقابلې دَ پاره روان شو. سلع غرحضورﷺ خپلې شاته كړو اودَ دښمنانوطرف ته متوجه كيدو سره ئى فوځ په ترتيب كړو. خندق چه كوم حضورﷺ كنستلې وو او په نورو صحابه كرامو ئى كنستلې وو په هغې كښې اوبه وغيره نه وې هغه صرف يوه كنده وه چه مشركان ئى بغيردَ بنديدلونه پريخودل. حضورﷺ ماشومان اوښځې دَ مدينې يومحله كښې كړې وو.

**مدينه منوره كښې بنو قريظه هم معاهده ماته كړه:** دَ يهوديانو يوجماعت بنوقريظه په مدينه طيبه كښې وو. دَ مشرق طرف ته دَهغوى محله وه. دَ نبى كريم ﷺ سره دَ هغوى صلح مضبوطه وه. دَ هغوى لويه ډله وه. تقريباً اته سوه كسان جنګيالان سړى په هغوى كښې دَ جنګ قابل وو. مشركانو او يهوديانو هغوى له حيى بن اخطب نضرى راوليګلو. هغوى دوى هم په شيشه كښې كوزكړل اوشنه باغونه ئى ورته اوخودل اوخان سره ئى كړل اوهغوى هم په عين وخت كښې مسلمانانوسره بې وعده ګى اوكړه او په ښكاره ئې صلح ماته كړه. دَ بهر نه دَ لسو زرو لښكر چه راغلې دى پراته دى دَ دننه نه دَ دې يهوديانوبغاوت چه دَ ترخ دَ دانې په شان راووتله. مسلمانان دَ دوودېرشو غابښونو په مينځ كښې دَ ژبې اويا په اوړو كښې دَ

(۱) صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الخندق قبل حديث:۴۰۹۷.

مالکې برابر غونډې پاتې شو. دې ټولو اووه سوو کسانوکولې څه شو. داهغه وخت وو د کوم نقشه قرآن پاك رابنکلې ده چه سترګې حيرانې شوې زړونه اولته شو قسم قسم خيالونه ورته راتلل په کش مکش کښې شو او په سخت امتحان کښې راګيرکړې شو. د پوره مياشتې پورې د دې ګيرې اچولوسخت تريخ صورت وو.

د مشرکانوخودومره طاقت اونه شو چه په خندق باندې راتيرشوې وې او لاس په لاس ئې جنګ کړې وې خو ګيره ئې اچولې وه اومسلمانان ئې تنګ کړل. البته عمرو بن عبدود عامری چه د عربومشهور تکړه پهلوان وو اود سپه سالارئې په هنرکښې ښه بې مثاله وو دې سره ښه بهادر او طاقتور وو يوځل ئې همت اوکړو اوخپل خان سره يوڅو نور پهلوانان يوځائ کړل او خندق سره ئې خپل اسونه راوستل. د دې حال په کتوسره رسول الله ﷺ خپلو سورو ته اشاره اوکړه خودا ونيلی شی د هغوی د نه تياری په وجه حضورﷺ حضرت علی ﷺ ته حکم اوکړو چه ته د دوی په مقابله کښې ورواوځه. د لږ ساعت پورې خو په دواړو بهادرانوکښې توره چليدله خو آخر شيرخدا د کفر ديو د تيغ نه اوويستلو په کوم سره چه مسلمانان ډير خوشحاله شو هغوی اوګڼړله چه فتح به هم زمونږ وی.

**اخرتيزه هوا راغله چې هغې ته بادصبا وئيلې شي:** الله رب العزت هغه تيزه او تنده هوا راوليګله چه د مشرکانو ټولې خيمې د بيخه اووتلې هيڅ يوڅيز په طريقه باندې پاتې نه شو د اور لګول ګران شو د پناه هيڅ ځائ نه ښکاريدو. آخر تنګ شو او په نامردنی سره واپس شو د کوم بيان چه په دې آيت کښې دې. د کومې هوا چه په دې آيت کښې ذکر دې د مجاهد ﷫ په قول کښې داصبا ده اود دې تائيدد حضورﷺ د دې حديث نه هم کيږي. ماته د صبا په هوا سره امداد راکړې شوې دې اوعاديان په ډبور هواګانو سره هلاك کړې شوې وو. (۱) عکرمه ﷫ فرمائی جنوبی هوا شمالی هوا ته په دې جنګ احزاب کښې اووئيل چه مونږ او تاسو خو د رسول الله ﷺ امدادکوو نو شمالی هوااووئيل چه ګرمی د شپې نه چليږی بيا په دوی باندې د صباهوا راوليګلې شوه. حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی زه خپل ماما حضرت عثمان بن مظعون ﷺ د خندق په شپه په سخته يخنئ اوتيزه هواکښې مدينې منورې ته اوليګلم چه خوراك اوبستره راوړه. ماد حضورﷺ نه اجازت اوغوښتو نوحضورﷺ اجازت راکړو اوارشاد ئې اوفرمائيلو چه زما کوم صحابی ﷺ ملاوشی نوهغوی ته وايه چه ماله راشی. اوس زه لاړم اوهوا ډيره تيزه اوشور سره روانه وه ماته چه کوم يومسلمان ملاوشو هغه ته مې د رسول الله ﷺ پيغام اورسولو اوچه چاهم واوريدو په اولته پښوسره ډير زر د حضورﷺ په خدمت کښې حاضرشو ترديه چه په دوی کښې چاشاته هم اونه کتل. هوازما ډال ديکه کولواوهغه ماسره لګيدلو تردې چه د هغې اوسپنه زما په پښيه باندې راپريوتله کومه چه ما لاندې اوغورزوله.

**هوا سره فرښتې هم راغلې:** دې هواسره الله تعالی فرښتې هم نازلې کړې وې کوم چه د مشرکانو زړونه سينې د ويرې اورعب نه ډکې کړې تردې چه د لښکر څومره سرداران وو خپل ماتحتان سپاهيان ئې خان ته راوغوښتل اووئی وئيل د خلاصی څه صورت اوګورئی د بچ کيدو څه انتظام اوکړئی. دا وو د فرښتو اچولې شوې ويره او رعب اوهم دا هغه لښکر دې د کوم ذکر چه په دې آيت کښې دې چه دالښکرخو تاسونه دې ليدلې. حضرت حذيفه بن يمان ﷺ ته د يوځوان سړی چه د کوفې اوسيدونکې وواوئيل اې ابوعبدالله تاسو ډير خوش نصيب ئی تاسو دالله تعالی رسول ﷺ اوليدلو اود حضورﷺ په مجلس کښې ناست وی نواوښايه چه تاسو به څه کول؟ حضرت حذيفه ﷺ وئيل والله مونږ به خپل خان قربانی کولو. هغه ځوان وئيل چه تره ګوره که مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه کښې وو نووالله د هغوی قدم به مو هم په زمکه نه کيخودو په خپلو اوږو باندې به مو بوتلو. هغه اوفرمائيل وراره ګوره يو

(۱) صحيح بخاری کتاب المغازی باب غزوة الخندق وهی الاحزاب: ٤١٠٥، صحيح مسلم: ۹۰۰.

واقعه واوره. د جنګ خندق په موقعه باندې حضور ﷺ د شپې ډير زيات مونځ کولو چه فارغ شونو معلومه نې کړه چه څوك شته چه لاړشي اود کافرانود لښکر خبرراوړي؟ د الله تعالى نبي ﷺ په دې سره شرط اولګولوچه هغه به جنت ته ځي. هيڅ څوك اونه دريدل ځکه چه د ويرې يخني اواولګې انتهاء وه. بيا حضورﷺ ډير وخت پورې مونځ اوکړو بيائي اوفرمائيل ـه شته څوك چه لاړشي اود کافرانو خبر راوړي چه هغوى څه څه کړي دي؟ د الله تعالى رسول ﷺ هغه مطمئن کوي چه هغه به خامخاواپس راځي اوزما دعاده چه الله تعالى دې هغه ماسره په جنت کښې ملګرې کړي. دې ځل هم څوك اونه دريدو او اودريدوبه څنګه؟ د اولګې په وجه نې خيټه ملا سره يوځائ شوې وه د يخنئي په وجه ئې غاښونه کړپيدل د ويرې په وجه نې اينې ويلې کيدې آخر نې زما نوم واخستو اوروسول الله ﷺ آواز راکړو اوس خو بغيرد اودريدو څه بله لار نه وه. وئې فرمائيل حذيفه ته لاړشه اوګوره چه هغوى دې وخت کښې څه کوي؟ ګوره ترکومې چه زما خواله واپس نه ئې راغلې بل څه نوې کار مه کوه. ما ډير ښه اوونيل او په خپله لار روان شوم اويه بهادرنې سره مشرکانو کښې ورننوتلم هلته په تلو سره عجيبه حال ووئه ښکاريدونکې د الله تعالى لښکر خپل کاريه تيزئې سره کولود نغرونه ديګونه هواااوچت کړل د خيمو لرګې راوتلې دي اور لګولې نه شي هيڅ يوڅيز په خپل ځائ پاتې نه شو.

**دابو سفيان اعلانونه:** هغه وخت ابوسفيان اودريدو اويه اوچت آواز ئې اعلان اوکړو اې قريشو د خپل خپل ملګرى نه هوښيارشئي خپل ملګرې اوګورئي داسې نه چه څوك پردې ولاړوي. مادې اوربدو سره چه ماسره يوقريشي خوان وو د هغه لاس مې اونيولو اوتپوس مې ترې اوکړوته څوك ئې؟ هغه ونيل چه زه فلانکې خوئ د فلانکى يم. ماونيل چه اوس هوښيار اوسيږه.

ابوسفيان ونيل قريشو په خدائې قسم مونږ دې وخت کښې د څه حصاريدو په ځائ کښې نه يو زمونږ څاروى اوښان هلاك کيږي. بنوقريظه مونږ سره وعده خلافي اوکړه هغوى مونږ ته سخت تکليف راورسولو بيادې هوا خو مونږ پريشانه کړې يو مونږ خو پوخ څيز خوړلې نه شو. اور نه شو بلولې خيمې په ځائ نه اودريږي. زه خو تنګ شوې يم ما خواراده کړې ده چه واپس لاړشو. نوزه تاسو ټولوته حکم درکوم چه واپس شئي. دومره وينا کولوسره په خپل اوښ چه په څلوربولې ناست وو وراوختلو هغه ئې اووهلو اويه دريوښنوباندې اودريدو بيائي د هغه ښپه کولاوکړه. هغه وخت دومره ښه موقعه وه چه که ما غوښتل نو ابوسفيان مې په يوغشي باندې ختمولې شو. خورسول الله ﷺ ماته وئيلې وو چه هيڅ يونوې کار به نه کوې. په دې وجه ما خپل زړه رامنع کړو اوس زه واپس راغلم اوخپل لښکر کښې شامل شوم کله چه زه راورسيدم اومې کتل نو رسول الله ﷺ يوڅادراغوستې کوم چه د هغوى د يوې بي بي وو اويه مانځه کښې مشغول وو. حضورﷺ زه اوليدم اود دوارو پښو په مينځ کښې ئې کينولم اوڅادر نې په ماباندې هم واچولو بيائي رکوع اوسجده اوکړه اوما څادر اغوستې وو ناست ووم کله چه حضورﷺ فارغ شو نوما ټوله واقعه بيان کړه. د قريشو د واپس کيدو خبر چه کله غطفان ته اورسيدو نوهغوى هم سامان اوترلواوواپس لاړل. يوبل روايت کښې دي چه حضرت حذيفه ؓ فرمائي چه زه کله لاړم نو سره د کړنګيدلې يخنئي په الله تعالى باندې قسم دې چه ماته داسې ښکاريده لکه چه زه په ګرم حمام کښې يم. هغه وخت ابوسفيان اور لګولې ګرميدو ما هغه اوکتلو اومې پيژندلو خپل غشي مې په لينده سور کړو اوغوښتل مې چه ورخوشې کړم اوهغه بالکل زما په نښه کښې وو ناممکن وه چه زمانښه خطا شوې وه ولې ماته د رسول الله ﷺ دا فرمان راياد شوڅه داسې حرکت مه کوه چه هغوى رابيدار شي او پوهه شي. نوماخپله اراده پريخوده. کله چه زه واپس راغلم نوهغه وخت هم ما څه يخنې محسوس نه کړه بلکه داسې معلوميدله لکه چه زه په حمام کښې روان يم. کله چه حضورﷺ ته اورسيدم نو ډيره زياته يخنې مې اوشوه زه رچيدم نوحضورﷺ خپل څادر په ماواچولو زه سملاستم نو خوب راغلو اوترسحره پورې اوده شوم سحر پخپله حضورﷺ دې فرمانيلوسره رابيدارکړم اې اوده

کیدونکیه راپاسه. (۱) یوبل روایت کښې دی چه کله دې تابعی ؒ اوونیل افسوس چه مونږ رسول الله ﷺ لیدلې وې اود هغه په زمانه کښې وو. نوحضرت حذیفه ﷺ وئیل چه افسوس ستاسو په شان ایمان زمونږ هم وې چه سره د نه لیدلو پخه اوکلکه عقیده لرئ. وراره کومه تمناچه تاسو کوئ نوداهم صرف تمنا ده نه ده معلومه چه تاسو به څه کول؟ په مونږ خوداسې سخت وخت راغلې دې دې وینا کولوسره هغوی بیا دا د خندق د شپې پورته بیان شوې واقعه بیان کړه. دې کښې داهم دی چه هواسره سره سیلئی اوباران هم وو. یوبل روایت کښې دی چه حضرت حذیفه ﷺ د حضور ﷺ سره خپل واقعات بیانول نوپه مجلس کښې ناستو کسانوونیل چه که مونږ موجود وې نو داسې به مو کول او داسې به موکول. په دې باندې هغوی داواقعه بیان کړه. چه دبهر نه د لسو زرو لښکرراګیرکړې وو د دننه نه د بنو قریظه اتوسوویهودیانو لښکر پریشانه کړې وو بال بچ په مدینه طیبه کښې وو. خطره لګیدلې ده که بنوقریظه دې طرف ته مخ کړو نو په یوساعت کښې به د ماشومانو اوښځو فیصله اوکړی. والله د دې په شان د ویرې شپه اوداسې حالت په مونږ چرته نه وو تیرشوې. بیا هغه هواګانې روانې دی هغه سیلئی ده ښه تیاره ده ګرارې بجلی او تندر راپریوځی چه الله تعالی دې حفاظت اوکړی. د ده ملګری کتل چرته دی؟ خپلې ګوتې به هم نه ښکاریدې. کوم منافقان چه مونږ سره هغوی یو په یو دې بهانوجوړولوسره چه زمونږ بال بچ تول هلته دی اود کور ساتندونکې هیڅ څوك نشته. حضور ﷺ له راتلل اواجازت به نی اخستلو اوحضور ﷺ هم یوکس هم منع نه کړو چاچه وئیل زه لاړشم حضور ﷺ به فرمائیل په شوق سره څه. یویوشواوخوئیدل اومونږ صرف درې سوه پاتې شو. حضور ﷺ تشریف راوړو یویو نی اوکتلو اوزما عجیبه حال وو نه ماسره د دښمن نه د بچ کیدو څه وسله شته اونه د یخنی نه د بچ کیدو څه کپړه. صرف زما د ښځې یو وړوکې غوندې څادر وو چه زما زنګنونوته هم نه رسیدلو. کله چه حضور ﷺ ماله راغلو نو هغه وخت ما په خپلو زنګنونوکښې سرور کړې تیټ ناست ووم او ږچیدلم. حضور ﷺ تپوس اوکړو داڅوك دې؟ ماونیل حذیفه. وئی فرمائیل حذیفه واوره والله په ماخوزمکه تنګه شوه چه هسې نه د اودریدو راته اووائی زه خو ډیر خراب یم خوکولې مې څه شو د حضور ﷺ فرمان وو ما وئیل حضوراکرم ﷺ اورم ارشاد؟ حضور ﷺ اوفرمائیل په دښمنانوکښې یوه نوې خبره کیدونکې ده لاړ شه دهغې خبر راوړه. والله په هغه وخت کښې زما نه د چازیاته ویره نه وه نه یخنی وه. خودحضور ﷺ حکم اوریدوسره اودریدم اوروان شوم ماواوریدل چه حضور ﷺ ماته دعاکوله اودې دعاسره ماواوکتل چه زما په زړه کښې هیڅ ویره اوخطره نه وه. بیا حضور نبی کریم ﷺ ماته آواز راکړو وئی فرمائیل ګوره حذیفه ماته د واپس راتلوپورې هلته څه نوې کار اونه کړې. په دې روایت کښې داهم دی چه ما ابوسفیان اول نه پیژندلو. زه لاړم نوهلته هم دا آوازونه کیدل څئی واپس لاړشئ. ما یوه عجیبه خبره داهم اوکتله چه هغه خطرناکه هوا چه دیګونه نی اړول هغه صرف د هغوی د لښکرپورې وه والله د هغوی نه یولیشت هم بهر نه وه. ما اوکتل چه کاڼړی په الوتو الوتو په هغوی راپریوتل.

**حذیفه فرشتې اولیدې**: کله چه واپس لاړم نوما اوکتل چه تقریبا شل سواره دی چه پټکې وهلی دی هغوی ماته اوونیل زه لاړشه اورسول الله ﷺ ته خبرورکړه الله تعالی تاسوته کامیابی درکړه او ستا دښمنانوته نی ماتې ورکړه. په دې کښې داهم دی چه د نبی کریم ﷺ په عادت مبارك کښې داهم داخل وو چه کله به هم د ویرې اومشکل وخت وو نوهغوی به مونځ شروع کولو کله چه ما حضور ﷺ ته داخبر ورکړو نوهم هغه وخت داآیت نازل شو. نو په آیت کښې د لاندې طرف نه د راتلونه مراد بنوقریظه دی دسختې ویرې اوګبراهټ په وجه نی سترګې اولته شوې وې اوزړونه نی خُلې له راغلی وو اوقسم قسم ګمانونه کیدل. تردې چه بعضې منافقانو خو وئیل چه په دې اوس جنګ کښې به کافر غالب راځی. نود عامو

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الجهاد باب غزوة الاحزاب:۱۷۸۸، ابن حبان:۷۱۲۵، دلائل النبوة:۳/۴۴۹.

منافقانوبه څه تپوس کوي؟ معتب بن قشير ونيل حضورﷺ خو مونږ ته ونيل چه تاسو به د قيصر اوکسرى دَ خزانو مالکان جوړيږئ اودلته داحالت دې چه متيازو له تلل هم سخت دى. دامختلف ګمانونه دَ مختلف خلق وو اومسلمانانوخو يقين کولوچه غلبه به هم زمونږ وى لکه چه فرمان دې ﴿ وَلَمَّا رَاَ الْمُؤْمِنُوْنَ الْاَحْزَابَ ۙ قَالُوْا هٰذَا مَا وَعَدَنَا اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَصَدَقَ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ ۫ وَمَا زَادَهُمْ اِلَّاۤ اِيْمَانًا وَّتَسْلِيْمًا ﴾ (١) خو منافقينوبه ونيل چه دې خل خو به په يوخل ټول مسلمانان سره دَ حضور ﷺ (نعوذبالله) لکه دَ ګاځرو مولو پرې کړې شى. صحابه کرامو ﷺ بالکل دَ دې ويرې اوپريشانتى په حالت کښې رسول الله ﷺ ته ونيلي ووحضور ﷺ دې وخت کښې مونږ ته دَ دې نه بچ کيدو څه دعا اوښايې حضورﷺ اوفرمانيل دادعاوايې ((اللهم استرعوراتناوامن روعاتنا)) ياالله زمونږ پرده اوساتې ياالله زمونږ ويره او خطره په امن سره بدله کړې. ديخوا دَ مسلمانانودا دعاګانې راوچتې شوې اواخوادَ رب لښکرې دَهواپه شکل کښې راغلې اوکافران ئې پانړې پانړې کړل.(٢) فالحمد لله.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| هُنَالِكَ | ابْتُلِيَ | الْمُؤْمِنُوْنَ | وَزُلْزِلُوْا | زِلْزَالًا شَدِيْدًا ⑪ |
| په دغه وخت کښې | وازمائيلې شو | مومنان | اواوجړقولې شو | په جړقولو سختو سره |

په دغه موقع د مسلمانانو پوره امتحان واخستې شو او په زوره زوره اوجړقولې شو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ | يَقُوْلُ | الْمُنٰفِقُوْنَ | وَالَّذِيْنَ | فِيْ قُلُوْبِهِمْ | مَّرَضٌ |
| او ياد کړه کله چې | ونيل | منافقانو | او هغه کسانو | چې په زړونو دهغوئ کښې | بمرض وو |

اوځه وخت چې منافقانو اوهغه کسانو چې په زړونو کښې ئې بيمارى وه إدا وينا کوله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَّا وَعَدَنَا | اللّٰهُ | وَرَسُوْلُهٗۤ | اِلَّا غُرُوْرًا ⑫ | وَاِذْ | قَالَتْ |
| چې وعده نۀ ده کړې زمونږ سره | الله | او رسول دهغه | مګر ددوکې | او کله چې | اوونيل |

چې مونږ سره خو الله ﷻ او د هغه رسول د دهوکې وعده کړې وه او څه وخت چې د دوى يوې ډلې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| طَّآئِفَةٌ | مِّنْهُمْ | يٰۤاَهْلَ يَثْرِبَ | لَا مُقَامَ | لَكُمْ | فَارْجِعُوْا ۚ |
| يوې ډلې | دهغوئ نه | اے ديثرب (مدينې) خلقو | نشته هيڅ ځائې | تاسو لره | نووابس شئ |

اووئيل اې دمدينې خلقو ! تاسو (ددښمن مقابلې ته) نشئ ټينګيدې نووابس لاړشئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيَسْتَاْذِنُ | فَرِيْقٌ | مِّنْهُمُ | النَّبِيَّ | يَقُوْلُوْنَ | اِنَّ بُيُوْتَنَا |
| او اجازت غواړى | يوه ډله | دهغوئ نه | دنبى ﷺ نه | وائي هغوئ | کورونه زمونږه |

اويوډلې د (پيغمبرنه) نه د واپس تلو اجازت غوښتلو ........ دائي اووئيل چې زمونږ کورونه په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَوْرَةٌ ۛ | وَمَا هِيَ | بِعَوْرَةٍ ۚ | اِنْ يُّرِيْدُوْنَ | اِلَّا | فِرَارًا ⑬ |
| غير محفوظ دى | حال دا چې نۀ دى هغه | غير محفوظ | نۀ لرى اراده دوئ | مګر | دتيښتې |

ډاګه پراته دى حالانکه هغه په ډاګه نه وو خو دوئ صرف د تيښتې لار کتله

(١) ٣٣/الاحزاب:٢٢.
(٢) احمد: ٣/٣ ح ١٠٩٩٦

**قوله تعالى:: وَإِذْ يَقُولُ الْمُنٰفِقُوْنَ**

**دَ منافقانوِدَ جنګ دَ میدان نه تیخته:-** دَ ویرې اوپریشانئ داحال بیانولې شی کوم چه دَ جنګ احزاب په موقعه باندې مسلمانانوته وو چه دَبهر نه دښمن په پوره لښکرو سره ګیره اچولې ولاړ دې. دننه په ښار کښې دَ بغاوت اُورلګیدلې دې. یهودیانوناځاپی صلح ماته کړه او بې آرامی پیداکړه. مسلمانان دَخوراك څښاك دَ څیزونو پورې تنګ شو. منافقان ښه په ښکاره جداکیدل. دَ کمزورې زړه والا خلقو قسم قسم خبرې جوړولې. وئیل چه بس دَ الله تعالى دَ رسول ﷺ وعدې مو اوکتلې. څه خلق دی چه دَ یوبل په غوږونوکښې شپیلی وهی چه ګوره پاګل شوې څه ؟ ګورې نه؟ دوه ګهړو کښې به نقشه بدله شی تختئ واپس شئ واپس ځئ.

**یا اهل یثرب ، د یثرب نه مراد مدینه منوره ده ::** دَ یثرب نه مراد مدینه طیبه ده. لکه چه په حدیث کښې دی ماته په خوب کښې ستاسو دَ هجرت ځائ خودلې شوې دې. چه دَدوو غریزو میدانونو په مینځ کښې دې اول خوزما خیال شوې وو چه دا هجر دې خونه دا یثرب دې. (۱) یوبل روایت کښې دی چه هغه ځائ مدینه طیبه ده. البته داخیال هم ساتئ چه په یوضعیف حدیث کښې دی چه څوك مدینې طیبه ته یثرب اووائی هغه دې استغفار اوکړی مدینه خو طابه ده هغه طابه ده. (۲) داحدیث صرف په مسنداحمدکښې دې اودَ دې په اسنادوکښې ضعف دې. وئیلې شی چه دَ عمالیق نه کوم سړې راغلې وو او حصار شوې وو دَ هغه نوم یثرب بن عبید بن مهلائیل بن عوص بن عملاق بن لاود بن ارم بن سام بن نوح وو. دَ دې دَ پاره داښار هم د هغه په نوم باندې مشهورکړې شو. داهم یوقول دې چه په تورات کښې دَ دې یولس نومونه راغلې دی. مدینه طابه جلیله جابرَه محبه محبوبه قاصمه مجبوره عذرامرحومه طیبه. کعب احبار رحمه الله فرمائی چه مونږ په تورات کښې داعبارت وینو چه الله تعالى مدینې منورې ته اوفرمائیل اې طیبه اواې طابه اواې مسکینه په خزانوکښې مه اخته کیږه په ټولو ځایونو باندې به ستا درجه اوچته وی. څه خلقو خو په دې موقعه په خندق کښې وئیل دلته حضورﷺ سره دَ پاتې کیدو ځائ نشته خپلوکورونوته واپس لاړشئ. بنوحارثه وئیل یارسول الله ﷺ زمونږ په کورونوکښې دَ غلاکیدو خطره ده. هغه خالی پراته دی مونږ له دَ واپس تلواجازت پکاردې. اوس بن قیظی هم دا وئیلې وو (۳) چه زمونږ په کورونوکښې دَ دښمن دَ ننوتو اندیښنه ده مونږ ته دَ تلو اجازت راکړئ. الله تعالى دهغوی دَ زړه خبره اوخودله چه دوی خو دهوکه کوی په حقیقت کښې هیڅ عذر هم نشته په نامردئ سره تختې دَ جنګ نه ځان پټوی خونیدل غوارې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَوْدُخِلَتْ | عَلَيْهِمْ | مِّنْ اَقْطَارِهَا | ثُمَّ | سُئِلُوا |
| اوکه چرې داخل شوې وې داکافران | په هغوئ باندې | داطرافو دمدینې ښار نه | بیا | طلب شوې وې دهغوئ نه |
| اوکه چرې د مدینې د طرف نه پرې څوك راننوځی | | | اودوئ ته دفساد جوړولو وینا اوکړی | |
| الْفِتْنَةَ | لَاٰتَوْهَا | | وَمَا تَلَبَّثُوْا | بِهَآ |
| دفتنې جوړولو | نوخامخا به ورغلی وې هغې له | | اووخت به نهٔ وو تیر کړې هغوئ | په جوړولو دفتنې کښې |
| نو په هغې پسې به ( په منډه) ورشی | | | او په دغه کورونو کښې به ډیر لږ (ناست) | |

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر باب اذا رای بقر النحر: ۷۰۳۵، صحیح مسلم: ۲۲۷۲، ابن حبان: ۶۲۷۶.

(۲) احمد: ۲۸۵/۴، مسندابی یعلی: ۱۶۸۸،

(۳) الطبری: ۲۲۵/۲۰.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَّا يَسِيرًا ۝ | وَلَقَدْ كَانُوا | عَاهَدُوا اللَّهَ | مِنْ قَبْلُ | |
| مګر ډير لږ | او وو | دا خاق چي وعده ني کړې وه د الله سره | مخکښې د دې نه | |

پاتې شي او حال دا دې چې دې خلقو د اول نه الله ﷻ سره دا وعده کړې وه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ | وَكَانَ | عَهْدُ اللَّهِ | مَسْئُولًا ۝ | قُلْ |
| چې نه به ګرزوی شاګاني | او ده | وعده الله | چې تپوس به ني خامخا کيږي | ورته اووايه |

چې دوئ به تيښته نه کوی او د الله ﷻ سره شوې وعده خو خامخا غوښتلې شي | ته ورته اووايه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَّن يَنفَعَكُمُ | الْفِرَارُ | إِن فَرَرْتُم | مِّنَ الْمَوْتِ | أَوِ الْقَتْلِ |
| هر ګز به فائيده درنګړي تاسو له | دا تيښته | که اوتښتيدئ تاسو | د مرګ نه | يا دقتل نه |

چې تيښته هيڅ فائده نه شي ورکولې | ...................که تاسو دمرګ يا دقتل نه تښتئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِذًا | لَّا تُمَتَّعُونَ | إِلَّا | قَلِيلًا ۝ | قُلْ | مَن ذَا الَّذِي |
| نو بيا به | اډژوند نه فائيده وانغستلې شي | مګر | لږه | ورته اووايه | څوک دې هغه کس |

او په دغه وخت کښې به درته د معمولي فائدې نه سوا بل هيڅ په لاس درنشي | ورته اووايه څوک به

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَعْصِمُكُم | مِّنَ اللَّهِ | إِنْ أَرَادَ | بِكُمْ | سُوءًا | أَوْ أَرَادَ |
| چې اوساتي تاسو | د الله نه | که اراده اوکړي الله | په تاسو باندې | دنقصان (ضرر) | يا اراده اوکړي |

تاسو د الله ﷻ نه بچ کړي | که چرې هغه تاسو ته تکليف درکول اوغواړي | يا که په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِكُمْ | رَحْمَةً | وَلَا يَجِدُونَ | لَهُم | مِّن دُونِ اللَّهِ |
| په تاسو باندې | درحمت | اونه شي موندې دوئ | دپاره دخانونو خپلو | په مقابله د الله کښې |

تاسو مهرباني کول اوغواړي (نو څوک يې منع کولې شي) اودوئ د الله ﷻ نه بغير

| | |
|---|---|
| وَلِيًّا | وَلَا نَصِيرًا ۝ |
| څوک دوست | اونه مددګار |

بل څوک دوست يا مددګار موندلې نشي |

**قوله تعالى:: وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم**

**د جهاد نه د تيختې سزا:-** کوم خلقو چه داعذرونه کول او د جهاد نه تختيدل چه زمونږ کورونه يوازې دي د کوم بيان چه پورته تيرشو. د هغوی باره کښې الله تعالی فرمائی که په دوی باندې دښمن د څلورو وارو طرفونو نه راشی او د هر هر طرف نه راتاوشی اوبيا د دوی نه په کفر کښې د داخليدو سوال اوکړې نو بې تامله به کفر قبول کړی خو د لږې ويرې اوخيالی دهشت په وجه د ايمان نه لاس راکاږی. دا د هغوی خرابې بيانوی. بيا فرمانی هم دا خو هغه دی چه اول نی اوردې اوردې خبرې کولې که هرڅه ولې اونه شی مونږ د جنګ د ميدان نه تيختې والا نه يوولې دوی نه پوهيږی کومې وعدې چه دوی الله تعالی سره کړې وې الله تعالی به د هغې تپوس پوښتنه کوی.

**قوله تعالى:: قُل لَّن يَنفَعَكُمُ الْفِرَارُ**

بیا ارشاد کیږي چه دمرګ نه تیختنه د جنګ نه خان پټول میدان کښې شاکولوسره خان نه شي بچ کولې. بلکه ډیر ممکن دی چه د الله تعالی ناڅاپې نیول ډیر زر راشي اود دنیالږه شان نفع هم حاصله نه کړې شي.سره د دې چه دنیاخود آخرت غوندې باقي څیز په مقابله کښې تېوله په تېوله سپکه او صرف بې فائدې څیز دې. بیا فرمائي چه بغیرد الله تعالی نه هیڅ څوك نه شي ورکولې نه دبل په ذریعه ورکولې شي نه امدادکولې شي اونه په حمایت سره راتلې شي.الله تعالی خو خپلې ارادې پوره کوي.

| |
|---|
| قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ |
| بیشکه ښه پیژني الله \| مخه بندونکی (په کار دجنګ کښې) \| |
| \|الله ﷻ په تاسو کښې هغه کسان ښه پیژني |
| مِنْكُمْ وَالْقَآئِلِيْنَ لِاِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ اِلَيْنَا ۚ وَلَا يَاْتُوْنَ |
| ستاسو نه \| او ویونکي \| رونړو خپلو ته \| چي راځئ \| زمونږ طرفته \| اونه راځي هغوئ \| |
| (چي په جهاد کښې دشریکیدو نه) منع کوی \|اوخپلورونړو ته وائي چي زمونږ طرفته راشئ |
| الْبَاْسَ اِلَّا قَلِيْلًا ۙ﴿۱۸﴾ اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۚۖ فَاِذَا |
| جنګ ته \| مګر \| لږ \| چي سخت بخیلان دی \|په تاسو باندې(په ملګرتیا کښې) \|پس هر کله |
| او خپله هم په جنګ کښې شرکت نه کوی مګر ډیر کم \| ستاسو په حق کښې ډیرشومان دی |
| جَآءَ الْخَوْفُ رَاَيْتَهُمْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ تَدُوْرُ اَعْيُنُهُمْ |
| چي راشي یره \| نو وینې ته هغوئ لره \| چي ګوری \| تاته \| چاپیره ګرځي سترګي دهغوئ \| |
| .نوهرکله چي دویرې وخت راشي\| نو ته ئې وینې چي داسې درته ګوری چي(له ویرې نه) ددوئ سترګي |
| كَالَّذِيْ يُغْشٰى عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ ۚ فَاِذَا |
| پشان دهغه چا \| چي بیهوشي راوستلې شوی وی \| په هغه باندې \| دمرګ نه \|پس هر کله چي |
| تاوراتاؤ کیږي \| لکه چي دمرګ بې هوشي پرې راغلې وی \| خو چي ویره ( ترې نه) |
| ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوْكُمْ بِاَلْسِنَةٍ حِدَادٍ اَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ ۭ |
| لاړه شي یره \| نو ملاویږي \| ستاسو سره \| په ژبوتیرو سره \| زیات حریصان \| په خیر باندې\| |
| لاړه شي \| نو دوئ د مال غنیمت په لالچ کښې په تیزو ژبو سره تاسو ته پیغورونه درکوی |
| اُولٰٓئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوْا فَاَحْبَطَ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ ۭ وَكَانَ |
| دا کسان چي دی \|دوئ هر ګز ایمان نه دي راوړي \|پس ضائع کړل الله \| عملونه ددوئ \|او دې دا کار |
| دې خلقو هډو ایمان نه دې راوړئ \| نو الله ﷻ ددوئ ټول عملونه برباد کړل |
| ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۱۹﴾ |
| په الله باندې \| اسان \| |
| \|اودا خبره الله ته ډیره اسانه ده \| |

قوله تعالى: قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ

د جهادنه تيختنه په اصل کښې د ايمان نه تيختنه ده:- الله تعالى په خپل محيط علم سره هغوى پيژنى کوم چه نور خلق هم د جهادنه منع کوى. خپلو ملګرو يارانودوستانو او دخاندان اوقبيلې خلقوته وائى راځئ تاسو هم مونږ سره شئ. خپل کوروڼه خپلې زمکې اوبچى مه پريږدئ. پخپله هم جهاد ته نه راځى دايوه بله خبره ده چه کله کله مخ راښکاره کړى اونوم اوليکى. داډير بخيلان دى نه د دوى نه تاته څه امداد رسيدلې شى اونه د دوى په زړه کښې ستاسره څه همدردى شته نه په مال غنيمت کښې ستاپه حصه خوشحاله دى. د ويرې په وخت کښې خود دې بزدلانو وارخطاکيږى اوسترګې توغې توغې کيږى. د نااميدئ په نظر سره ګورى. خوچه ويره ترې لرې شى نو بياورږدې اوږدې ژبې راوويستې اوغټې غټې دعوې کولې. مونږ له راکړه مونږ له راکړه شورئې جوړکړې وى. مونږ ستاسو ملګرى يو مونږ د جنګ خدمات پوره کړې دى زمونږ حصه هم شته. خود جنګ په وخت کښې خپل شکل هم نه ښائى د منډې وهونکو شاته اوجنګ کونکو پسې شاته پاتې کيږى. د مال په طمع اولالچ کښې لکه د مچانو په شان اينختې وى ښه ده چه دروغ او نامردى دواړه عيبونه په چا کښې راجمع وى د هغه په شان بې خيره انسان به بل څوک وى؟ د امن په وخت کښې مکرتوب بداخلاقى خرابې ژبې اود جنګ په وخت کښې نامردى ژړه غوني او د ښځو په شان خصلتونه. د جنګ په وخت کښې د حائضه ښځې په شان خان له يوازې او د مال د اخستلو په وخت کښې د خرو په شان چغې وهل. الله تعالى فرمائى خبره دا ده چه د هغوى زړه د شروع نه د ايمان نه خالى دې خکه خود هغوى عملونه هم بې کاره دى دا ټول الله تعالى ته آسان دى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | يَحْسَبُوْنَ | الْاَحْزَابَ | لَمْ يَذْهَبُوْا |
| | | | ګمان کوى دوئ | په حمله کونکو ډلو باندې | چې لانه دى تلى هغوئ |
| | | | دوئ دا ګمان کوى چې (په مدينه باندې حمله کونکې)لښکرې لا واپس تلى نه دى | | |
| وَاِنْ يَّاْتِ | | الْاَحْزَابُ | يَوَدُّوْا | لَوْ اَنَّهُمْ | بَادُوْنَ |
| او که بيا راشى (حمله اوکړى) | | ډلې | نو خوښوى به دوئ | کاش چې دوئ | اوسيدونکى وې |
| اوکه دغه لښکرې بيا راشى انو دوئ به دا غوره اوګنړى چې بهر په ميرو کښې ډيره وى | | | | | |
| فِى الْاَعْرَابِ | | يَسْئَلُوْنَ | عَنْ اَنْۢبَآئِكُمْ | | وَلَوْ كَانُوْا |
| په باندو کښې | | چې تپوسونه ئې کولې (دلرې نه) | دخبرونو (يعنى حالاتوى) ستاسو | | او که وې دوئ |
| ..........تش ستاسو د حالاتو تپوسونه ئې کولې اوکه چرې دوئ تاسره هم وى | | | | | |
| فِيْكُمْ | مَا قٰتَلُوْٓا | | اِلَّا قَلِيْلًا | لَقَدْ كَانَ | لَكُمْ |
| په منځ ستاسو کښى | نه به وو کړې جنګ دوئ | | مګر لږ | په تحقيق سره ده | ستاسو دپاره |
| نو په جنګ کښې به ډيره کمه حصه اخلى (مسلمانانو!) تاسو دپاره (په دې سختو حالاتو) کښې درسول الله | | | | | |
| فِىْ رَسُوْلِ اللّٰهِ | اُسْوَةٌ | حَسَنَةٌ | لِّمَنْ كَانَ | يَرْجُوا | اللّٰهَ |
| په رسول دالله کښې | نمونه | ښه بهتره | دپاره دهغه چا | چې اميد لرى هغوئ | دملاقات دالله |
| په ذات کښې ښائسته نمونه موجوده ده داسې خلقو دپاره چې دالله ﷻ اودقيامت دورځې | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ | وَذَكَرَ اللّٰهَ | كَثِيْرًا | وَلَمَّا | رَاَ | الْمُؤْمِنُوْنَ | | |
| او دورځې دآخرت | او يادوي الله | ډير | او هر كله چې | اوليدلې | مومنانو | | |
| نه ويريږي \| او الله ﷻ ډير ډير يادوي \|................ او څه وخت چې مومنانو دغه لښكرې اوليدلې نو | | | | | | | |
| الْاَحْزَابَ | قَالُوْا | هٰذَا مَا | وَعَدَنَا اللّٰهُ | | | | |
| لښكرې | نو اووئيل دوئ | دا هغه څيز دې | چې ددې وعدې كړې وه زمونږ سره الله | | | | |
| وې وئيل \| چې دا خوهغه موقع ده چې الله ﷻ او د هغه رسول دكومې وعده كړې وه | | | | | | | |
| وَرَسُوْلُهٗ | وَصَدَقَ اللّٰهُ | وَرَسُوْلُهٗ | وَمَا زَادَهُمْ | اِلَّآ | | | |
| او رسول دهغه | او رښتيا وه خبره دالله | او درسول دهغه | او زيات نه كړو دوئ لره دې واقعې | مګر | | | |
| ................ او الله ﷻ اوددهٔ رسول ﷺ رښتيا وئيلې وو\| داو كفارو دې حملې | | | | | | | |
| اِيْمَانًا | وَّتَسْلِيْمًا | | | | | | |
| ايمان | او غاړه ايښودل ددوئ | | | | | | |
| ددوئ ايمان او اطاعت نور هم زيات كړو \| | | | | | | | |

**قوله تعالىٰ: يَحْسَبُوْنَ الْاَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوْا**

**نفاق بزدلي ده:-** دَ هغوى دَ بزدلئي او ويرې داحال دې چه تراوسه پورې دَ هغوى دَ دې خبرې يقين اونه شو چه دَ كافرانو لښكر واپس شو اوداخطره ده چه هغوى چرته بيارا واپس نه شي. دَ مشركانو لښكر كتلو سره ئې وارخطاشي اووائي چه افسوس مونږ مسلمانانوسره په دې ښاركښې هډو وو نه. بلكه چرته دَ باندچيانو سره په شاړو بنجرو او لرې ځنګلونوكښې وې چرته دَ تلونكو راتلونكوخلقونه مو تپوس كولو چه دَ جنګ څه اوشو؟ الله تعالى فرمائي چه كه دوى تاسره وى هم نو بې كاره دى دَ دوى زړونه مړه شوى دى دَ نامردئي ګوړى (وينو) هغه ډډ كړې دى دوى به څه جنګ اوكړى اوڅه بهادرى به اوښائي؟

**قوله تعالىٰ: لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ**

**دَ رسول الله ﷺ ژونديوه ښكلې نمونه ده:-** دا آيت ډير لوئ دليل دې په دې امر باندې چه دَ نبى كريم ﷺ تول اقوال افعال احوال اقتدار مثل پيروى كول دَ تابعدارئي لائق دى. په جنګ احزاب كښې هم چه كوم صبر تحمل بې مثاله بهادرئي مثال حضورﷺ قايم كړولكه دَ الله تعالى دَ لارې تيارى دَ جهاد شوق اود سختئي په وخت كښې هم دَ رب نه دَ آسانئي اميد هغه وخت نبى اكرم ﷺ اوخودلو نويقيناً دا تول څيزونه دَ دې قابل دى چه مسلمانان دې دا دَ خپل ژونديوعظيم حصه جوړه كړى اودَخپل خوږښي حبيب كبرياءاحمدمجتبى احمدمختار حضرت محمد مصطفى ﷺ دَ خپل ځان دَ پاره يوه بهترينه نمونه جوړه كړى اوپه دې صفتونوسره خپل ځان هم متصف كړى. دَ دې دَ پاره قرآن كښې هغه خلقوته كوم چه په هغه وخت كښې روستوشوى وو اودَ ويرې اوپريشانئي ښكاره كونه ئې كوله فرمائي چه تاسو زما دَنبى ﷺ تابعدارى ولې اونه كړه؟زمارسول ﷺ خو په تاسوكښې موجود وو دَ هغه نمونه ستاسو په وړاندې وه. تاسو ته ئې نه يوازې دَ صبر اواستقامت تلقين كړې وو بلكه دَ ثابت قدمئي استقلال او اطمينان يولوئ غرستاسوپه وړاندې ولاړوو. كه تاسو په الله تعالى باندې په قيامت باندې ايمان ساتلونو بيا هيڅ وجه نه وه چه تاسو به خپل رسول ﷺ دَ خپل ځان دَ پاره نمونه اومثال نه ګرځولو؟



**قوله تعالى: وَلَمَّا رَاَ الْمُؤْمِنُوْنَ الْاَحْزَابَ**

**د ربښتوني مؤمنانو د ایمان بیان:** بیا دَ الله تعالی دَ ربښتوني مؤمنانو اودَ الله تعالی دَ فوځیانو دَ حضور ﷺ دَ ربښتوني ملګرو اوکلك ایمان والا بیان کولې شی چه هغوي کله دَ کمزوری زړه والا کافرانو لښکر اولیدو نو په اول نظرکښې اوونیل چه هم په دوی باندې دَ فتح موندلو مونږ ته خوشخبری لوزیږي ملاوشوې دې اوهم دَ دوی دَ شکست مونږ سره وعده کړې شوې ده. اووعده هم دَ چا دَالله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ. اودانا‌ممکن دی چه دَ الله تعالی اودَ هغه دَ رسول ﷺ وعده غلطه شی. یقیناً دَ دې جنګ دَ کامیابئ سهرا به هم زمونږ په سرونووی. دَ هغوی دې پوره یقین دَ ایمان ربښتوني جذبه الله تعالی هم اولیدله او په دنیااوآخرت کښې بهترینه کامیابی هغوی ته ورکړه. ډیر ممکن دی چه دَ الله تعالی دَ کومې وعدې په دې کښې ارشاره ده هغه دا آیت وی چه په سورت بقره کښې تیرشوې دې. ﴿ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَاْتِكُمْ مَّثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ ۗ مَسَّتْهُمُ الْبَاْسَآءُ وَالضَّرَّآءُ وَزُلْزِلُوْا حَتّٰى يَقُوْلَ الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ ۗ اَلَآ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ ﴾ (۱) یعني آیا تاسودا اوګڼړل چه بغیردَ دې نه چه ستاسو ازمیښت اوشی تاسو به جنت ته لاړشئ؟ تاسو نه دَ وړاندې خلقو هم ازمیښت شوې دې هغوی په غم تکلیف جنګ جګړو کښې راګیرکړې شوی وو تردې چه هغوی اوجړقولې شو چه دَ ایماندارانو اوپخپله دَ رسول الله ﷺ دَ خلې مبارکې نه اووتل چه دَ الله تعالی امدادکښې وخت ولې اولګیدو؟یادساتئ دَ الله تعالی امداد ډیر نیزدې دې. (۲) یعني داخوصرف امتحان دې دیخوا تاسو ثابت قدمی اوخودله اخوادَ الله تعالی امدادراغلو. الله تعالی اودَ هغه ر ـول ﷺ ربښتوني دی.

**د صحابه کرامو د ایمان تعریف ::** فرمائی چه دَ رسول الله ﷺ دې صحابه کرامو چه دَ خپل مخالفینو دا دومره ګڼړه اولیده نو دَ هغوی یقین نور هم زیات شو. دوی په خپل ایمان او خپل تسلیم کښې نور هم زیات شو. پوره یقین ئې اوشو فرمانبرداری ئې نوره هم زیاته شوه. په دې آیت کښې دلیل دې دَ ایمان په زیاتیدو باندې اوپه نسبت دَ نورو دَ هغوی دَ ایمان کلکیدو. دَ جمهورو ائمه حضراتو هم دغه مذهب دې چه ایمان زیاتیږی اوکمیږی. مونږ هم دَ دې تقریر دَبخاری شریف دَ شرح په شروع کښې کړې دې. ولله الحمد والمنه. فرمائی چه دې سختیا او تاو تریخ اودې تنګ حالئ داحال اودانقشه دَ هغوی چه کومه دَ ایمان په الله تعالی باندې وه نوره ئې هم زیاته کړه اودَ منلوکوم خوئی چه په هغوی کښې وودَالله تعالی اودَ رسول الله ﷺ خبرې به ئې منلې اوپه هغې باندې عمل کونکی وو په دې تابعدارئ کښې نورهم زیات شو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ | رِجَالٌ | صَدَقُوْا |
| | | | خیني دمومنانونه | داسې سړی (خلق) دی | چې رشګتیاکړه هغوئ |
| | | | په مومنانو کښې بعضې داسې دی | چې دالله ﷻ سره ئې | |
| مَا | عَاهَدُوا | اللّٰهَ | عَلَيْهِ ۚ | فَمِنْهُمْ | مَّنْ |
| هغه خبره | چې وعده کړې وه هغوئ | دالله سره | په هغې باندې | پس خیني دهغوئ نه | هغه څوک دی |
| خپل لوظ په ربښتیا پوره کړو | ..........نو په دوی کښې خوځینې هغه دی چې خپله منښته پوره کړه | | | | |

(۱) ۲/البقرة:۲۱٤.

(۲) الطبری:۲۰/۲۳٦.

قَضٰی نَحْبَهٗ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوْا

چې پوره ني کړو | نذر خپل | او ځيني د هغوئ نه | هغه دي | چې انتظار کوي | او بدل ني نه کړو عمل خپل

او څوک په کښي لا د وخت انتظار کوي | او دوئ (په خپله رويه کښي) ذره بر بدل

تَبْدِيْلًا ۝ لِّيَجْزِيَ اللّٰهُ الصّٰدِقِيْنَ بِصِدْقِهِمْ

په بدلولو سره | د پاره ددې چې بدله ورکړي | الله | رښتينو مسلمانانو ته | د رښتينولۍ د هغوئ

نشو | دا واقعه ځکه اوشوه | چې الله ﷻ رښتونو مسلمانانو ته د دوئ د رښتياؤ اجر ورکړي

وَيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ اِنْ شَآءَ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ ؕ

او چې سزا ورکړي | منافقانو له | که خوښه ني شي | يا رجوع په رحمت سره وکړي | په هغوئ باندې

او منافقانو ته که چرې اوغواړي نو سزا ورکړي | ...................يا د هغوئ توبه قبوله کړي

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝

بيشکه الله | دې | بښونکې | مهربانه |

بيشکه الله ﷻ بښونکې مهربان دې

**قوله تعالىٰ: مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا**

**مؤمنانو او کافرانو کښې فرق:-** د منافقانو ذکر پورته تير شو چه د وخت نه وړاندې خو د خپل ځان قربانۍ کولو اوړدې اوړدې دعوې کولې خو په وخت راتلو کښې پوره بزدل او نامرده ثابت شو. ټولې وعدې هم داسې پاتې شوې او د ثابت قدمۍ په ځائې شاکړې اوتختيدل. دلته د مؤمنانو ذکر کولې شي چه هغوی خپلې وعدې پوره کړې ونې خودلې. بعضو د شهادت جام نوش کړو او بعضې د دې په انتظار کښې بې ارامه ناست دی. په صحيح بخاری کښې حضرت زيد بن ثابت ﷺ فرمائی کله چه مونږ قرآن پاك ليکل شروع کړه نوماته يو آيت نه ملاويدلو سره د دې چه په سورت احزاب کښې هغه آيت ما پخپله د رسول الله ﷺ د مبارکې ژبې نه اوريدلې وو. آخر حضرت خزيمه بن ثابت انصاری ﷺ سره دا آيت ملاو شو. داهغه صحابی دې چه د چا ځان له ګواهی چه رسول الله ﷺ د دوو کسانو برابره کړې وه. هغه آيت ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ قَضٰی نَحْبَهٗ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا ۝﴾ ([1])

**ددې ايت مبارک شان نزول او تفصيل:** دا آيت د حضرت انس بن نضر ﷺ باره کښې نازل شوې دې. ([2]) واقعه دا ده چه هغوی په جنګ بدر کښې نه وو شريك شوی د څه چه هغه ته سخت افسوس وو چه د ټولونه اول جنګ کوم کښې چه رسول الله ﷺ پخپله بذات خود شريك وو زه شامل نه شوم. اوس چه د جهاد موقعه راشی زه به الله تعالی ته خپل صداقت ښايم. داهم چه زه به څه کوم؟ د دې نه زياته ويناکولو سره اوويريدو. اوس چه کله د جنګ احد موقعه راغله نو هغه اوکتل چه مخامخ حضرت سعد بن معاذ ﷺ راروان دې هغه نې چه اوکتلو نو په حيرانتيا سره نې تپوس اوکړو ابوعمر چرته روان نې؟ والله ماته خود احد د غرنه اخواته د جنت خوشبويانې راځی. دې وينا کولو سره هغه وړاندې شو او مشرکانو سره نې ښه توره اوچلوله مسلمانان واپس شوی وو او دې يوازې وو د هغه بې شانه حملو د

---

[1]) ۳۳/الاحزاب:۲۳.. صحيح بخاری کتاب التفسير سورة الاحزاب باب ﴿فمنهم من قضى نحبه ومنهم من ينتظر...﴾:٤٧٨٤، ترمذی٤ ۳۱۰.

[2]) صحيح بخاری حواله سابق:٤٧٨٣.



کافرانو غابښونه مات کړی وو او په ځغو صورو سره راغله اود ځلورو واړو طرفونه نی راګیرکړو او شهید کړې شو. په هغوی باندې د اتیاو نه زیات زخمونه راغلی وو څه د نیزې څه د تورې اوڅه د غشو. د شهادت نه پس چا هغه اونه پیژندو تردې چه د هغوی خور هغه اوپیژند اوهغه هم د لاسونو د ګوتو بندونه کتلوسره. هم د هغه باره کښې دا آیت نازل شوې دې. (١) اوهغه هم داسې وو چه څه نی ونیلې وو هغه نی اوخودل ﷺ. یوبل روایت کښې دی چه کله مسلمانان اوتختیدل ، رسول کریم ﷺ عرض اوکړو چه یاالله هغوی چه څه اوکړل د هغې نه خو زه معذوری ښکاره کوم اومشرکانو چه څه اوکړه د هغې نه ویزاره یم. په دې کښې داهم دی چه حضرت سعد﷛ هغه ته اوفرمائیل زه تاسره یم ورسره لاړ هم شو خو فرمائیلې چه هغه څه کول هغه زما د طاقت نه بهر وو. (٢) د حضرت طلحه ﷛ بیان په ابن ابی حاتم کښې دې چه د جنګ أحدنه رسول الله ﷺ مدینې ته واپس راغلو نوپه منبرباندې کیناستو او د الله تعالی حمد اوثنا نی بیان کړه او مسلمانانوسره نی همدردی ښکاره کړه. اوکوم کوم چه شهیدان شوی وو د هغوی درجې نی اوخودلې. بیانی د دې آیت تلاوت اوکړو. یومسلمان اودریدو تپوس نی اوکړو د کومو خلقو چه په دې آیت کښې ذکر دې هغه څوك دی. په دې وخت کښې زه مخامخ راروان ووم اود شین ښښن رنګ دوه کپړې مې اچولې وې. حضور ﷺ زما طرف ته اشاره اوکړه ونی فرمائیل اې تپوس کونکیه داهم په هغوی کښې دې. (٣) د هغه خوئ حضرت موسی بن طلحه ﷛ حضرت معاویه ﷛ دربار ته لاړو کله چه د هغه ځائ نه واپس راغلو نود دروازې نه بهر وتلې ووچه جناب معاویه ﷛ واپس راوغوښتو او ونی فرمائیل راشه مانه یوحدیث واوره. ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه ستا پلارطلحه ﷛ د هغوی نه دې.دچا بیان چه په دې آیت کښې دې چه هغوی ښپله وعده اونذرپوره کړو (٤) رب العالمین د هغوی بیان کولوسره فرمائی چه بعضې خود هغه ورځ په انتظاردی چه بیا دې جنګ وی اوهغوی ښپله کارګذاری الله تعالی ته اوښائی اود شهادت جام نوش کړی. نو بعضو خوصداقت او وفاداری ثابته کړه اوبعضې د موقعه په انتظارکښې دی. هغوی نه ښپله وعده بدله کړه او نه د نذر نه پوره کولو د هغوی څه خیال شته بلکه هغوی په ښپله وعده باندې کلك ولاړدی. هغوی د منافقانو په شان په وخت باندې بهانې جوړونکی نه دی. دا ویره اوزلزله صرف د دې د پاره وه چه خبیث اوطیب فرق معلوم شی او ښه اوبدحال هرچاته ښکاره شی. ځکه چه الله تعالی خو عالم الغیب دې د هغه په نیز خو پټ او ښکاره برابر دی. چه کوم نه دی شوی هغه هم داسې پیژنی لکه چه هغه شوی وی. خود هغه عادت دې چه ترکومې مخلوق عمل اونه کړی هغوی ته صرف د ښپل علم په وجه سزا اوبدله نه ورکوی. لکه چه الله تعالی ارشاد دې ﴿ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتّٰى نَعْلَمَ الْمُجٰهِدِيْنَ مِنْكُمْ وَالصّٰبِرِيْنَ ۙ وَنَبْلُوَا۟ اَخْبَارَكُمْ ۝﴾ (٥) مونږ به ستاسو ښه پړتال اوکړو اومجاهدین اوصابرین به تاسو نه بیل کړو. نود وجود نه د اول علم اود وجود نه پس علم دواړه الله تعالی ته دی اودې نه پس جزا اوسزا. لکه چه فرمائی ﴿ مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى مَاۤ اَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتّٰى يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِيْ مِنْ رُّسُلِهٖ مَنْ يَّشَاۤءُ ۖ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝﴾ (٦) یعنی الله تعالی چه په کوم حال باندې تاسو نی هم په هغې

(١) صحیح مسلم کتاب الجهاد باب ثبوت الجنة للشهید:١٩٠٣،ترمذی. ٣٢٠٠، احمد:١٩٣/٣.
(٢) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة الاحزاب:٣٢٠١، صحیح مسلم:٢٨٠٥.
(٣) ترمذی حواله سابق:٣٢٠٣وسنده حسن، مسندابی یعلی:٦٦٣بتصرف یسیر.
(٤) ترمذی حواله سابق:٣٢٠٢وسنده حسن، ابن ماجه. ١٢٦
(٥) ٤٧/محمد:٣١.
(٦) ٣/آل عمران: ١٨٢. الخ

باندې موٴمنان پرېږدی نوداسې نه ده چه ښه اوبد تميز به نه کوی. نه الله تعالی داسې نه دې چه تاسوله دغيبو خبردرکړی. نودلته هم فرمائی چه هغه په دې وجه صادقانو له دَخپل رښتياوُ بدله ورکوی اووعده خلافو منافقانوته سزا ورکوی ياهغوی ته دَ توبې توفيق ورکوی چه دوی خپله لار بدله کړی او په رښتونی زړه سره دَ الله تعالی طرف ته تيښ شی نوالله تعالی به هم په هغوی مهربان شی اودَ هغوی خطاګانې به معاف کړی. خکه چه هغه دَ خپل مخلوق خطاګانې معاف کونکې او په هغوی باندې مهربانئی کونکې دې. دهغه کرم اورحمت دَ غضب اوغصې نه ډير زيات شوې دې.

وَرَدَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

| او واپس کړل الله | هغه کسان | چی کفر ئې کړې وو

او الله ﷻ کافران په غصه کښې ډک واپس کړل

بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوْا خَيْرًا ۭ وَكَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ

دغصې دهغوئ سره | چی حاصل ئې نهٔ کړو | هيڅ خير | او کافی شو الله | دمومنانو دطرفنه

اود هغوئ هيڅ مراد پوره نه شو | اوهم الله ﷻ مومنانو دپاره په جنګ کښې

الْقِتَالَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ قَوِيًّا عَزِيْزًا ۚ

دپاره دجنګ | او دې الله | قوت والا غالب

کافی شو | او الله ﷻ ډير قوی اوزبردست دې |

قوله تعالی:: وَرَدَّ اللّٰهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

**په جنګ خندق کښې دَ الله تعالی دَ امداد نازليدل:-** الله تعالی خپل احسان بيانوی چه هغه طوفان اوباد او باران راوليګلو اوخپل نه ښکاريدونکې لښکر ئې راکوزکړو اوکافران ئې تس نس کړل اوهغوی په سخته نااميدئی اونامرادئی سره خپله ړيره اخواکولو ته مجبوره شو. بلکه که دوی دَ رحمة للعالمين په امت کښې نه وې نودې هواګانويه دوی سره هغه کول کوم چه عاديانوسره هغه بې برکته هواکړې وو. دَرب العالمين ارشاددې چه ترکومې ته په دوی کښې ئې نوالله تعالی به دوی ته عام عذاب نه ورکوی نودوی ته ئی صرف دَ خپل شيطانت مزه ور اوڅکله. دهغوی ډله ئې ګډوډه کړه اودهغوی نه ئې خپل عذاب اخواکړو. دَ دوی دا ډله بازی صرف يو خپله نفسانی ډله وه نوځکه هواهغوی خراب کړل کوم سوچونه اوفکرونه ئې چه کړې وو هغه ټول خاورو سره خاورې شو. دَ کوم ځایٔ غنيمت؟ دَ کوم ځایٔ فتح؟ په خپل ځان باندې اخته شو. لاسونه ئې مروړل، غاښونه چيچل اودَ غصې نه تاويدل په ذلت رسوائی نامرادئی او ناکامئی سره واپس شو. د دنياتاوان ئې ځان له اودَ آخرت نقصان پرې دپاسه. ځکه چه کوم سرې دَ يوکار اراده اوکړی اوهغې ته عملی شکل هم ورکړی نوکه په هغې کښې کامياب شی اوکه نه نوګناهګارخوبه وی. نود رسول الله ﷺ دَ قتل اودهغه دَ دين دَ ختمولو خواهش او دَ هغې تيارې اوبياعمل هرڅه هغوی اوکړل خوقدرت دَ دواړو جهانوبوج په هغوی باندې راواچولو هغوی ئې سوزيدلی زړه واپس کړل. الله تعالی پخپله دَ موٴمنانودَ طرف نه دَ هغوی مقابله اوکړه نه مسلمانانو هغوی سره جنګ اوکړو اونه ئې هغوی اخواکړل بلکه مسلمانان په خپل ځایٔ باندې پاتې وو اوهغوی منډې وهلې. الله تعالی دَ خپل لښکر عزت اوساته اودَ خپل بنده اورسول ﷺ امدادئی اوکړو اوپخپله کافی شو.

**د جنګ احزاب په موقع درسول کريم ﷺ دعاء:** د دې د پاره به حضوراکرم ﷺ فرمائيل چه د الله تعالى نه سوا بل څوك معبودنشته هغه يوازې دې هغه خپله وعده رښتياکړه د خپل بنده امدادنې اوکړو د خپل لښکر عزت ئې اوکړو ټولودښمنانوسره يخپله مقابله شو اوټولوته ئې ماتې ورکړه. دې نه پس نور څوك هم نشته. (١) (بخاري ومسلم). حضورﷺ د جنګ احزاب په موقعه د الله تعالى نه دعاکړې وه هغه هم په بخاري اومسلم کښې روايت ده. حضورﷺ فرمائيلې وو ((اللهم منزل الكتاب سريع الحساب اهزم الاحزاب وزلزلهم)) اې الله تعالى اې د کتاب نازلونکيه اې زر حساب اخستونکيه دې لښکروته شکست ورکړه اودوى اوخوزوه. (٢) په دې فرمان ﴿ وَكَفَى اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ الْقِتَالَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ قَوِيًّا عَزِيْزًا ۝ ﴾ يعنى الله تعالى د مؤمنانو کفايت په جنګ سره اوکړو. په دې يوه ډيره ښکلې مزيداره خبره ده چه نه يوازې د دې جنګ نه مسلمانان خلاص شو بلکه د بياد پاره هم هميشه صحابه کرامﷺ دې نه بچ شو چه مشرکان په دوى حمله اوکړې. تاسو تاريخ اوګورئې د جنګ خندق نه پس د کافرانو همت نه دې شوې چه هغوى په مدينه طيبه باندې يا په حضورﷺ باندې چرته پخپله حمله کړې وى. د هغوى د سپيرو قدمونونه الله تعالى د خپل حبيب پاك ﷺ د قرار اوآرام ځائ محفوظ اوساتلو. فالحمدلله. په خلاف د دې مسلمانان په دوى باندې ورختلې دى تردې چه د عربو د زمکې نه الله تعالى کفر او شرك ختم کړو. کله چه د دې جنګ نه کافران راواپس شو هم هغه وخت رسول الله ﷺ د پيشنګوئې په توګه فرمائيلې وو چه د دې کال نه پس به قريش تاسو سره جنګ نه کوى. بلکه تاسو به هغوى سره جنګ کوئ. (٣) هم داسې اوشو. تردې چه مکه معظمه فتح شوه. د الله تعالى د طاقت مقابله د بنده د وس کار نه دې. الله تعالى څوك مغلوب کولې نه شي. هغه د خپل امدادپه طاقت سره هغه خواره شوى او ګډې وډې شوې لښکر روستوکړو. هغوى ته ئې هسې په نوم باندې هم څه فائده ورنه کړه. هغه اسلام او مسلمانان غالب کړل خپله وعده ئې رښتيا اوخودله اوخپل بنده اورسول ﷺ سره ئې امداد اوکړو. فله الحمد.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاَنْزَلَ | الَّذِيْنَ | | | | |
| او راکوز کړل الله | هغه کسان | | | | |
| او په اهل کتابو کښې چې کومو خلقو (دمکې) | | | | | |
| ظٰهَرُوْهُمْ | مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ | مِنْ صَيَاصِيْهِمْ | | | |
| چي امداد ئې کړې وو دحمله کونکو سره | داهل کتابونه | دقلاګانو دهغوئ نه | | | |
| دکافرانو مدد کړې وو | هغوئ ئې دقلعه ګانو نه لاندې راکوز کړل | | | | |
| وَقَذَفَ | فِيْ قُلُوْبِهِمُ | الرُّعْبَ | فَرِيْقًا | تَقْتُلُوْنَ | وَتَاْسِرُوْنَ |
| اووائې چوئ | په زړونو دهغوئ کښې | داسې رعب | چې يوه ډله | قتلوله تاسو | او قيدکوله تاسو |
| اودهغوئ په زړونو کښې ئې ستاسو رعب واچولو | چې بعضې مو ترې اوژل | او بعضې مو ترې | | | |
| فَرِيْقًا ۚ | وَاَوْرَثَكُمْ | اَرْضَهُمْ | وَدِيَارَهُمْ | وَاَمْوَالَهُمْ | |
| بله ډله | او په ميراث کښې ئې درکړه تاسو له | زمکه دهغوئ | اوکورونه دهغوئ | اومالونه دهغوئ | |
| بنديان کړل | اوتاسو ئې د هغوئ د زمکو اودکورونو اود نورو مالونو مالکان کړئ | | | | |

١) صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الخندق: ٤١١٤، صحيح مسلم: ٢٧٢٤، دلائل النبوة: ٣/٤٥٦.
٢) صحيح بخارى حواله سابق: ٤١١٥، صحيح مسلم: ١٧٤٢، بيهقى: ٣/٤٥٦.
٣) دلائل النبوة: ٣/٤٥٨.

وَاَرۡضًا | لَّمۡ تَطَـُٔوۡهَا ؕ | وَكَانَ اللّٰهُ | عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ
او هغه زمکه | چې نه وو کیښودلې قدم تاسو په هغې | او دی الله | په هر څیز باندې
او دهغې زمکې چې تاسو پرې (دجنګ په غرض) قدم قدرې ایخودې نه وو | او الله په هرڅه پوره پوره

قَدِيۡرًا ۟
قادر |
قدرت لری |

**قوله تعالى:: وَاَنۡزَلَ الَّذِيۡنَ ظَاهَرُوۡهُمۡ**

**دبنوقریظه محاصره:-** دومره مونږ اول لیکلي دي چه کله د مشرکانو اویهودیانولښکر مدینې طیبې نه راغلو اوهغوی ګیره واچوله نود بنوقریظه قبیله کومه چه په مدینه طیبه کښې موجود وه اود هغوی سره معاهده شوې وه هغوی هم په عین موقعه باندې خپله بې وفائي اوکړه وعده نی ماته کړه سترګې اوخودلې. د هغوی سردار کعب بن اسد په خبروکښې راغلو اوحیی ابن اخطب خبیث هغوی په معاهده ماتولو باندې تیارکړل اول خوده اونه منل په خپله وعده باندې ولاړوو. حیي ونیل چه اوخوګوره تاته دعزت تاج درپه سر کولوله راغلې یم. قریش اودهغوی ملګری غطفان اودهغوی ملګری اومونږ ټول یویو. مونږ داقسم خوړلې چه تر کومې مونږ یویو مسلمان قیمه قیمه نه کړو دې ځاۍ نه به نه اخواکیږو. کعب ډیر هوښیارسړې وو هغه جواب ردکړو داصرف غلطه خبره ده. داستاسودوس کارنه دې ته مونږته دذلت طوق رااچول غوارې. ته ډیرسپیره سړې نی زما د مخې نه اخوا شه اوما په خپل مکر کښې مه راګیروه. خوحیی بیاهم اخوا نه شو اوهغه نی پوهه کولو. آخره کښې ونیل چه ګوره که قریش او غطفان اوتختی نوزه به سره د خپلې ډلې ستا ګرهنی ته راشم اوچه کوم ستا اوستاد قوم حال وی هم هغه به زما اوزما د قوم حال وی. آخر په کعب باندې دحیی جادو اوچلیدو اوبنوقریظه صلح ماته کړه. په دې سره حضوراکرم ﷺ اوصحابه کراموؓ ته سخت خفګان اورسیدو اوډیره ګرانه ورته پریوتله. بیاچه کله الله تعالی د خپل غلامانوامداد اوکړو

**د رسول کریم ﷺ په بنو قریظه د حملې حکم.** حضور ﷺ د صحابه کرامو سره په کامیابنی او سرفرازنی سره مدینې ته راواپس شو صحابه کرامو وسلې اوسپړدلې اوحضور ﷺ هم وسله کوزه کړه اود ام سلمه ؓ په کور کښې د ګرداوغبار نه د پاکیدو د پاره غسل کولوته کیناستو چه جبرائیل ؑ ښکاره شو د هغه په سرباندې رینبمی پټکې ووپه قچرباندې سور وو په کوم چه رینبمی ګدنی وه ونی فرمائیل یارسول الله ﷺ ولې تاسو ملا خلاصه کړه؟ حضور ﷺ اوفرمائیل او. حضرت جبرائیل ؑ اوفرمائیل چه فرښتو خو لاتراوسه پورې خپلې وسلې نه دی اخواکړی زه د کافرانو نه اوس اوس راغلم. واورنی د الله تعالی حکم دې بنوقریظه طرف ته لاړشنی اود هغوی پوره غوړونه راکاږنی. ماته هم الله تعالی حکم راکړې چه زه هم هغوی راګیرکړم. حضور ﷺ هم هغه وخت راپاسیدو تیارشو اوصحابه کراموؓ ته نی حکم ورکړو ونی فرمائیل چه په تاسوکښې به هریوکس د مازیګر مونځ په بنوقریظه کښې کوی د ماسپښین نه پس داحکم ملاوشوې وو.

د بنوقریظه قلعه د دې ځاۍ نه په یوڅو میله فاصله باندې وه د مانځه وخت په صحابه کراموؓ باندې هم په لاره راغلو نوبعضو مونځ اداکړو ونی فرمائیل چه د حضور ﷺ د دې فرمان کولو مطلب هم دا وو چه مونږ ډیر تیزلاړشو اوبعضوونیل چه مونږ خو به هلته رسیدو نه بغیرمونځ نه کوو. کله چه حضور ﷺ ته دا خبره معلومه شوه نو حضور ﷺ چاته هم رټنه یاغصه اونه کړه. حضور ﷺ په مدینه طیبه باندې حضرت ابن ام مکتوم ؓ خلیفه جوړکړو. دحضرت علی ؓ په لاس کښې د لښکر جهنډا ورکړه او

بخپله هم حضور ﷺ د صحابه کرامو ﷺ سره شاته شاته دبنوقریظه طرف ته روان وو. تلوسره ئی د هغوی قلعه راګیره کړه تریپنځه ویشتو ورځوپورې محاصره وه. کله چه یهودیان ترپوزې راغله اوتنګ حال شو نو هغوی خپل حکم (ثالث) حضرت سعدبن معاذ ﷺ جوړکړو کوم چه د قبیله اوس سردار وو. بنوقریظه او اوس کښې د جاهلیت په زمانه کښې اتفاق اویوشان والي وو د یوبل ملګری وو په دې وجه د دې یهودیانوخیال وو چه حضرت سعد ﷺ به زمونږ لحاظ او خیال کوی لکه څنګه چه عبدالله بن ابی بن سلول بنوقینقاع خلاص کړې وو. بل طرف ته د حضرت سعد ﷺ داحال وو چه په جنګ خندق کښې د اکحل په رګ باندې یوغشې لګیدلې وو د کوم نه چه وینه روانه وه. رسول الله ﷺ د هغه په زخم باندې داغ لګولې وو اود جمات خیمې کښې پروت وو چه خواکې عیادت اود بیمارئی تپوس پوښتنه هم کوی. حضرت سعد ﷺ چه کومې دعاګانې اوکړې هغې کښې یوه دا دعاهم وه یاالله که اوس هم یوداسې جنګ پاتې وی په کوم کښې چه کافران اوقریش ستا په نبی باندې حمله کوی نوته ما ژوندې اوساته زه به په هغې کښې شرکت اوکړم اوکه تایوداسې جنګ باقی نه دې ساتلې نوخیردې که زما د زخم نه وینه جاری وی خواې زما ربه ترکومې چه بنوقریظه ته دهغوی د سرکشئی سزا په خپلو سترګویخولوسره اونه کړم ته زما مرګ روستوکړه. د حضرت سعد ﷺ غوندې مستجاب الدعوات د دعاد قبلیدو شان ته ګوره هغوی دا دعاکوی اواخوا یهودیان بنوقریظه د هغوی په فیصله باندې رضامندی ښکاره کوی اوقلعه مسلمانانوته حوال کوی. حضور ﷺ سړې لیګی او هغه د مدینې طیبه نه راغواړې چه ته راشه اود دوی باره کښې خپله فیصله واوروه.. دې په خربانډې راسور کړې شو اوټوله قبیله د اوس ورپورې اونختله چه ګوره حضرت خیال کوه بنوقریظه هم ستاسو سړی دی هغوی په تاسو باندې یقین کړې دې اوستا حلیفان دی. ستاد قوم د غم دردملګري دی تاسو په دوی باندې رحم اوکړئی. هغوی سره په نرمئی سره مخ شئی. ګورئی دې وخت کښې د هغوی هیڅ څوک هم نشته اودا ستاسو په وس کښې دی وغیره. حضرت سعد ﷺ صرف خاموش وو اوهیڅ جواب ئی نه ورکولو. دې خلقو مجبور کړو چه جواب ورکړې خکه چه دوی نه پریخودلو. آخر هغوی اوفرمائیل چه اوس وخت راغلو چه سعد ﷺ د دې خبرې ثبوت ورکړې هغه ته د الله تعالی په لارکښې د یوملامت کونکی دملامتیاهیڅ پرواه نشته. دې اوریدو سره خود دې خلقو زړونه ډوب شو اوپوهه شو چه د بنوقریظه خیر نشته.

کله چه د حضرت سعد ﷺ سورلی هغه خیمې ته اورسیده کوم ځائ چه جناب رسول کریم ﷺ تشریف فرما وو نوهغوی اوفرمائیل اې خلقو د خپل سردار د استقبال د پاره اودریږئی مسلمانان اودریدل اوهغه ئی په ډیر قدر او عزت سره په ډیراکرام اواحترام سره د سورلئی نه راکوز کړو. دا په دې وجه وو چه دې وخت کښې هغوی د حکم (ثالث) په حیثیت سره وو د هغوی فیصله به پوره توګه باندې نافذ ګڼلې شوه. د هغوی کیناستو سره نبی کریم ﷺ اوفرمائیل داخلق ستا په فیصله باندې رضامندی اود قلعه نه راوتی دی. اوس چه تاسو د دوی باره کښې څنګه حکم کوئی اوکړئی هغه اوونیل چه زه کوم حکم په دې باندې اوکړم هغه به پوره کولې شی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل او ولې نه. وئی ونیل اود دې خیمې والا باندې به هم د دې پوره کول ضروری وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل یقیناً هغوی ونیل د دې طرف والا باندې هم؟ هغه طرف ته ئی اشاره اوکړه کوم طرف ته چه پخپله رسول الله ﷺ موجود وو. خود حضور ﷺ طرف ته ئی اونه کتل د هغوی دبزرګیی اوعظمت په وجه سره. حضور ﷺ جواب ورکړو اود دې طرف والا ته هم. هغه اوفرمائیل اوس زما فیصله واورئی. زه وایم چه په بنو قریظه کښې څومره د جنګ والا خلق دی هغه قتل کړئی اودهغوی اولاد قیدکړئی د هغوی مالونه په قبضه کښې واخلئی. رسول الله ﷺ اوفرمائیل اې سعد ﷺ تا په دوی باندې هغه حکم اوکړو چه کوم حکم الله تعالی په دوی

باندې د اووه اسمانونود پاسه کړې دې. يوروايت کښې دی حضورﷺ اوفرمائيل تاد ربښتونی مالك الله تعالی چه کوم حکم وو هم هغه واورلو.

بیاد حضورﷺ په حکم سره خندقونه اوکنستلې شو اوهغوی نی تړلې راوستل اودَ هغوی ستونه نی والوزول دوی په شمیر کښې اوه اته سوه وو. دَ هغوی ښځې اوماشومان بچی واخستلې شو. مونږ دا ټول واقعات په کتاب السیر کښې ښه په تفصیل سره لیکلې دی. والحمدلله.

**د بنو قريظه ذليله کيدل:** فرمائی چه کومو اهل کتابو یعنی یهودیانو دَ کافرانودَ لښکرو شاباسې کولو او دَ هغوی ملګرتیائی کوله دَهغوی نه هم الله تعالی دَ هغوی قلعه ګانې خالی کړې. دَ دې قوم بنو قريظه لوئ سردار دَ کوم نه چه دَ هغوی نسل جاری شوې وو په وړاندې زمانه کښې راغلې وو په حجاز کښې په دې طمع کښې ابادشوې وو چه دَ کوم نبی آخرزمان ﷺ پیشنګوئی زمونږ په کتابونو کښې ده هغه هم دلته کیدونکې دې نومونږ به دَ ټولونه اول دَ هغوی دَ تابعدارنې په نیك بختنې کښې مسعودشو. خودې ناخلفو چه کله هغه نبی ﷺ راغلو دَ هغه تکذیب نی اوکړو دَ څه په وجه چه د الله تعالی لعنت به دوی باندې نازل شو. دَ (صیاصی) نه مراد قلعه ګانې دی.(١) هم دَ دې معنې په اعتبارسره ښکرونه هم صیاصی وائی. داځکه چه دَ ځناور په ټول بدن کښې هم دا دَ ټولودَ پاسه وی. دَ هغوی په زړونو کښې الله تعالی رعب واچولو. مسلمانان نی دَ بیخه ویستل غوښتل خوالله تعالی معامله دوی خلاف اوکړه اولټه شوه طاقت نی کمزورې شو کامیابې په ناکامیابئی سره بدله شوه نقشه ورانه شوه او ملګری اوتختیدل. دوی بې پښولاسونوپاتې شو. دعزت خواهش ورته ذلت اوخودلو. دَ مسلمانانو بربادولو اودَ هغوی دَ اوره کولو په خوشحالئی کښې نی خپل ځان اوره کړو او اوس لا دآخرت بدنصیبی روستو ده. څه قتل کړې شو اوڅه قیدکړې شو. دَ عطیه قرظی بیان دې کله چه زه حضورﷺ ته پیش کړې شوم نوزما باره کښې حضورﷺ ته څه خیال راغلو ونی فرمائیل دې ځان له کړنی ګورنی که دَ ده دَ نوم لاندې وینیته وی نو قتل نی کړنې ګنی په قید کښې کینوئې. وئی کتل نوزه ماشوم ووم ژوندې نی پریخودم.(٢) دَ هغوی دَ زمکې دهغوی دَ کورونو دَ هغوی دَمالونو مالکان مسلمانان شو بلکه هغه زمکې هم چه تراوسه پورې پرته وه اوکوم ځائ چه دَ مسلمانانو قدمونه هم نه وو رسیدلی. یعنی دَ خیبرزمکه یا دَ مکې مکرمې زمکه یادَ فارس زمکه یادَ روم زمکه اوممکن دی چه دا ټولې ترې مراد وی. الله تعالی دَ لویو قدرتونو مالك دې.(٣)

**غزوۀ خندق کښې د صحابه کرامو بهادری او دسعد ؓ فیصله:** مسنداحمد کښې دَ حضرت عائشه صدیقه ؓ بیان دې چه دَ خندق په ورځ زه اووتلم چه دَ لښکر څه حال معلوم کړم نوماخپل ځان پسې شاته دَ یولوئ زور سره راتلونکی کشار واوریدو اودَ هغه دَ وسلې ګړنګارمې واوریدو. زه دَ لارې نه اخواشوم یوطرف ته کیناستم چه اومې کتل نوحضرت سعدبن معاذ ؓ دَ لښکر طرف ته روان دې اوهغه سره دَ هغه رور حارث بن اوس وو دَ هغه په لاس کښې دَ ده ډال وو. حضرت سعد ؓ دَ اوسپنې زغره اچولې وه خو ډیر غټ وو زغره نی په پوره بدن باندې نه وه راغلې لاسونه نی کولاو ووشعرونه نی ونیل اوپه تاویدو اوخوندکښې روان وو. زه دَ دې ځائ نه لږه نوره وړاندې لاړم اویوې باغیچې ته لاړم هلته څه مسلمانان موجود وو په هغوی کښې حضرت عمر بن خطاب ؓ هم وو اویوصاحب چه په ځان نی څه اچولې وو. حضرت عمر ؓ زه اولیدم او بیا څه وو چه ډیر وران شو اوونی فرمائیل دا بهادری ته نه

---

(١) الطبری: ٢٠/٢٤٩.

(٢) ابوداؤد کتاب الحدود باب فی الغلام یصیب الحد: ٤٤٠٤ وسنده صحیح، ترمذی: ١٥٨٤، نسائی: ٣٤٦٠، ابن ماجه: ٢٥٤١، احمد: ٤/٣١٠، ابن حبان: ٣٧٨.

(٣) الطبری: ٢٠/٢٥٠.

پیژنې دلته جنګ کیږی؟ الله تعالی ته معلومه ده چه څه نتیجه به وی؟ ته دلته څنګه راغلې؟ وغیره وغیره. غرض داچه زه نی دومره ملامته کړم اوما ونیل چه دازمکه اوشلیږی اوزه په کښې ورننوځم. کوم صاحب مغفر(د اوسپنې ټوپې سره) مخ پټ کړې وو هغه د عمر فاروق ﷺ دا خبرې واوریدې د سرنه نی د اوسپنې ټوپې کوزه کړه اومې کتل نو ما اوپیژندو چه دا خو حضرت طلحه بن عبیدالله ﷺ وو. هغه حضرت عمر ﷺ چپ کړو چه څه له نی ملامته کوې د نتیجه څه ویره ده؟ ولې ته دومره ویریږې چه څوک به اوتختی ونیل ټول هرڅه د الله تعالی په لاس کښې دی. حضرت سعد ﷺ ته یوقریشی شیش واخستو او یوغشې ئی اوویشتلو اوونیل واخله زه ابن عرقه یم. د حضرت سعد ﷺ د اکحل په رګ باندې هغه غشې اولګیدو او هم هلته ورخښ شو. د وینو دارې ترې روانې شوې هغه وخت هغه دعااوکړه یاالله ما مه وژنه ترکومې چه د دې بنوقریظه تباهی په خپلو سترګو اونه وینم. د الله تعالی شان دې چه هم هغه وخت وینه اودریده. مشرکان هواګانو اوتختول او مسلمانانوته الله تعالی کفایت ورکړو. ابوسفیان اود هغه ملګری خو اوتختیدل او تهامه ته لاړل. عیینه بن بدر اود هغه ملګری نجد ته لاړل. بنوقریظه خپلې قلعه ته لاړل رابندشو. میدان نی خالی اولیدو نو رسول الله ﷺ مدینې ته تشریف راوړو. د حضرت سعد ﷺ د پاره هم په جمات کښې د څرمن یوه خیمه اولګولې شوه. هم هغه وخت حضرت جبرائیل ﷺ راغلو او په مخ نی دوړې وې ونی فرمائیل تاسو وسله کولاوکړه اوفرښتې خو تراوسه پورې وسله ترلې دی. پاڅه د بنوقریظه هم فیصله اوکړه او په هغوی باندې حمله اوکړه. حضور ﷺ زر وسله اوتړله او صحابه کرامو ﷺ ته نی هم د روانیدو اعلان اوکړو. د بنوتمیم کورونه د مسجد نبوی ﷺ سره نیزدې وو په لاره نی د هغوی نه تپوس اوکړو ولې رونړو؟ څوك مو په تلولیدلی؟ هغوی ونیل او اوس اوس حضرت دحیه کلبی ﷺ لاړو. حالانکه هغه حضرت جبرائیل ﷺ وو خود هغوی ږیره اومخ بالکل د حضرت دحیه ﷺ په شان وو.

اوس حضور ﷺ لاړو اود بنوقریظه د قلعه محاصره نی اوکړه. کله چه هغوی اوویریدل او تنګ شو نو هغوی ته نی اوونیل مونږ ته قلعه راکړنی اوتاسو هم زمونږ لاس له راشنی رسول الله ﷺ چه څه غواړی ستاسو په حق کښې به فیصله اوکړی. هغوی حضرت ابولبابه بن عبدالمنذر ﷺ سره مشوره اوکړه نو هغوی اشاره اوکړه چه په دې صورت کښې د خپل خان نه لاس اووینځنی. هغوی دامعلومه کړه او دانی نامنظوره کړه اوونی ونیل مونږ قلعه خالی کوو ستاسو فوخ ته قبضه درکوو. زمونږ باره کښې مونږ خپله فیصله حضرت سعد ﷺ ته ورکوو. حضور ﷺ دا منظورکړه بیائی حضرت سعد ﷺ راوغوښتوهغوی تشریف راوړو او په خر باندې سور وو په کوم چه د کهجورو د پانړو ګدنی وه. هغه په دې باندې ډیر په ګرانه باندې سور کړې شوې وو. د هغه قوم هغه راګیرکړې وو او پوهه کول نی چه ګوره بنوقریظه زمونږ ملګری دی زمونږ دوستان دی زمونږ د مرګ اوژوند شریکان دی. د هغوی چه کوم تعلقات دی هغه تاسو نه پټ نه دی. هغوی په خاموشنی سره د ټولو خبرې اوریدلې کله چه د هغوی محلې ته اورسیدل نودهغوی طرف ته نی نظر واچولو چه اوس وخت راغلو چه زه د الله تعالی په لارکښې د یو د ملامت کونکی د ملامتیا هیڅ پرواه اونه کړم.

**د فیصلې کولو نه پس سعد ﷺ خپله خیمه کښې شهید شو:** کله چه د حضور ﷺ خیمې ته د هغه سورلی راورسیده نو حضور ﷺ اوفرمائیل د خپل سردار طرف ته وړپاڅنی اوهغه په آرام سره راکوزکړنی. حضرت عمر ﷺ اوونیل زمونږ سید خو الله تعالی دې. حضور ﷺ اوفرمائیل راکوزنی کړنی. خلق یوځائ شو اود سورلنی نه نی راکوزکړو. حضور ﷺ اوفرمائیل سعد ﷺ د دوی باره کښې چه کوم حکم کول غواړې اوکړه؟ هغوی اوونیل د دوی مشران به قتل کولې شی؛ د دوی واړه به قیدکولې شې اود دوی مال تقسیم کړنی. حضور ﷺ اوفرمائیل سعد ﷺ تا په دې حکم کښې د الله تعالی اود هغه د رسول ﷺ پوره موافقت اوکړو. بیا حضرت سعد ﷺ دعا اوغوښتله چه یاالله که ستا په نبی ﷺ باندې د قریشو څه

حمله اوس هم باقي وي نو ما په هغې کښې د شامليدلو د پاره ژوندې اوساته ګنی خپل طرف ته مې اوغواړه. هم هغه وخت د زخم نه وينه روانه شوه اوسره د دې چه زخم نې ډك شوې وو هسې لږ شان باقي وو. هغه بيا هم هغه خيمې ته واپس کړې شو اوهم هلته شهيد شو. پخپله حضرت رسول مقبول ﷺاوهغوی سره حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمرؓ وغيره هم هلته راغلل ټولو ژړل او ما د حضرت ابوبکرؓ اود حضرت عمرؓ په آوازکښې فرق هم کولې شو. هغه وخت زه په خپله حجره (کمره) کښې ووم. په حقيقت کښې د رسول الله ﷺ صحابه کرامؓ داسې وو لکه چه الله تعالی فرمائيلی ﴿ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ ۚ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْـَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوٰى عَلٰى سُوْقِهٖ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيْظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ ۭ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنْهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴾ په خپل مينځ کښې د يوبل سره پوره محبت اومينه ساتله. حضرت علقمه ؓ تپوس اوکړو ام المؤمنين داخوراته اوفرمائې چه رسول الله ﷺ به څنګه ژړل؟ ونې فرمائيل د حضورﷺ سترګو به په چاباندې هم اوښکې نه بهيولې اودغم اوخفګان په موقعه به هغویﷺ خپله ږیره مبارکه په خپل موټې کښې نيوله.(١)

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَاَيُّهَا النَّبِيُّ | قُلْ | لِّاَزْوَاجِكَ | اِنْ كُنْتُنَّ | تُرِدْنَ | |
| اے نبی | اووایه | ښځو خپلو ته | که یې تاسو | چې غواړې | |
| ائې نبی ﷺ خپلو بيبيانو ته اووايه چې که تاسو د دنيا د | | | | | |
| الْحَيٰوةَ | الدُّنْيَا | وَزِيْنَتَهَا | فَتَعَالَيْنَ | اُمَتِّعْكُنَّ | وَاُسَرِّحْكُنَّ |
| ژوند | ددنيا | او ښائيست دهغې | نو راشئ | چې څه سامان درکړم تاسو له | او پرېږدم تاسو |
| ژوند خوندونه اوددې ډول سنګار غواړئ نو راځئ چې زه درله څه لږ ډير سامان درکړم او ښه | | | | | |
| سَرَاحًا | جَمِيْلًا | وَاِنْ كُنْتُنَّ | تُرِدْنَ اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ | وَالدَّارَ |
| په پرېښودلو | ښائسته سره | او که یې تاسو | چې غواړئ الله | او رسول دهغه | او کور |
| په مناسبه طريقه مو رخصت کړم او که تاسو الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ او آخرت غواړئ نو | | | | | |
| الْاٰخِرَةَ | فَاِنَّ اللّٰهَ | اَعَدَّ | لِلْمُحْسِنٰتِ | مِنْكُنَّ اَجْرًا | |
| دآخرت | نو بيشکه چې الله | تيار کړې دې | دپاره دنيك عمله ښځو | ستاسو نه اجر | |
| الله ﷻ په تاسو کښې نيکو بيبيانو دپاره ډير لوئې اجر تيار کړې دې | | | | | |
| عَظِيْمًا | | | | | |
| لوئ | | | | | |

**قوله تعالى: يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ**

**د امهات المؤمنين فضائل:-** په دې آياتونوکښې الله تعالی خپل نبی کريم ﷺ ته حکم ورکوی چه خپلو بيبيانوته په دووخبروکښې ديوې دقبلولواختياروركړه. که تاسوپه دنيااود دې په ځيزونو باندې پسخيږئ نو راشئ چه زه تاسو د خپلې نکاح نه جداکړم. اوکه تاسو په تنګدستئ باندې دلته په

(١) احمد:٢/١٤١-١٤٢، صحيح بخاری كتاب المغازی باب مرجع النبیﷺ من الاحزاب....:٤١٢٢، صحيح مسلم:١٧٦٩مختصراً، ابن حبان:٧٠٢٨.

صبرکولو سره د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ مرضئ اورضامندي غواړني اود اخرت رونق مو خوښ دي نو په صبر اوبرداشت باندې ماسره ژوندتیرکړني الله تعالی به تاسو له دهغه ځای نعمتونه درکړي. الله تعالی دي د حضور ﷺ د ټولوبیبیانونه خوشحاله شي چه زمونږ میندې دی ټولو الله تعالی د هغه رسول ﷺ اوآخرت خوښ کړو په کومې چه رب راضی شو بیا د آخرت د خوشحالوسره نی د دنیا خوشحالنی هم ورکړي. دحضرت عائشه ؓ بیان دې د دې آیت په نازلیدو باندې د الله تعالی نبی ﷺ ماله راغلو چه زه د یوې خبرې تاسره ذکر کونکې یم ته په جواب ورکولو کښې تندی مه کوه خپل مورپلارسره مشوره اوکړه. بیاحضور ﷺ داآیت لوستلو ما زر جواب ورکړو یا رسول الله ﷺ په دې کښې د مور پلار سره د مشورې کولو هیڅ حاجت نشته زما الله تعالی خوښ دې زما رسول الله ﷺ خوښ دې اود آخرت کور مې خوښ دې. دحضور ﷺ ټولو بیبیانو هم داسې اوکړه کوم چه مااوکړه. (۱) یوبل روایت کښې دی چه درې ځل حضوراکرم ﷺ حضرت عائشه ؓ ته اوفرمانیل چه ګوره بغیرد مور پلار د مشورې نه څه فیصله مه کوه.

بیاچه کله حضور ﷺ زماجواب واوریدو نوخوشحاله شو اومسکې شو. بیاحضور ﷺ د نورو بیبیانو حجرو کمرو ته تشریف یوړو هغوی ته نی د اول نه دا اوفرمانیل چه عائشه صدیقه ؓ دا جواب ورکړی دې هغوی به ونیل هم دغه جواب زمونږه هم دې فرمانې چه د دې اختیار نه پس کوم چه مونږ اختیارکړو نودا اختیار په طلاق کښې شمیر نه شو(۲) مسنداحمدکښې دی حضرت ابوبکر ؓ دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضریدل غوښتل خلق د حضور ﷺ په دروازه کښې ناست وو اوحضور ﷺ دننه تشریف فرماوو اجازت ملاو نه شو. په دې کښې حضرت عمر ؓ راغلو هغه هم اجازت اوغوښتو خو ملاو نه شو. لږ ساعت پس نی دواړه رایادکړل. چه لاړل نو ونی کتل د حضور ﷺ بیبیانې حضور ﷺ سره ناستې دی اوحضور ﷺ چپ دې. حضرت عمر ؓ ونیل ګورنی زه د الله تعالی رسول ﷺ خندوم. بیانی ونیل یارسول الله ﷺ افسوس چه تاسوکتلې زما بی بی نن زمانه پیسې غوښتلې ماسره نه وې کله چه نی زیات ضد شروع کړو نوزه پاسیدم او د هغې څټ مې تاؤ کړم دې اوریدو سره حضور ﷺ مسکې شو او ونی فرمانیل دلته هم دغه قصه ده ګوره دا ټولې ناستې دی مانه مال غواړي. حضرت ابوبکر ؓ د عائشه ؓ طرف ته ورټوپ کړو اوحضرت عمر ؓ د حضرت حفصه ؓ طرف ته ونی فرمانیل افسوس دې تاسو د رسول الله ﷺ نه هغه څیز غواړنی چه هغوی سره نشته. هغه خو خیر تیره شوه رسول الله ﷺ هغوی رامنع کړل ګنی دواړو بزرګانو خو خپلې لونړه وهلې. اوس دې ټولوبیبیانو ونیل چه بنه ده غلطي اوشوه بیا به مونږ حضور ﷺ داسې هیڅ کله هم نه تنګوو. بیادا آیاتونه نازل شو اود دنیا اوآخرت د خوښولو اختیارنی ورکړو. دټولو نه اول حضور ﷺ حضرت صدیقه ؓ له تشریف یوړو هغې آخرت خوښ کړو لکه څنګ چه په تفصیل سره تیرشو. دې سره نی دادرخواست هم اوکړو یارسول الله ﷺ تاسوخپلې یوې بی بی ته هم دا مه فرمانې چه ما دا اختیارکړو. حضور ﷺ اوفرمانیل چه الله تعالی زه د پټولود پاره نه یم رالیګلې بلکه زه نې خودلو د پاره آسانی راوستلود پاره رالیګلې یم مانه خو چه څوک تپوس کوي زه به صفا صفا وایم. (۳) د حضرت علي ؓ فرمان دې د طلاق اختیار نی نه ورکړې بلکه د دنیااویاد آخرت د ترجیح اختیار نی ورکړې وو. (۴) خود دې په سندکښې هم انقطاع ده اودا د آیت د

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله ﴿یاایهاالنبی قل لازواجك ان کنتن.....﴾:۴۷۸۵-۴۷۸۶، صحیح مسلم: ۱۴۷۵.

(۲) صحیح بخاری کتاب الطلاق باب من خیر ازواجه:۵۲۶۲، صحیح مسلم:۱۴۷۷.

(۳) احمد:۳۲۸/۳، صحیح مسلم: کتاب الطلاق باب بیان ان تخییره امراته لایکون طلاقا الابالنیة: ۱۴۷۸.

(۴) احمد:۷۸/۱

ظاهری الفاظوهم خلاف ده خکه چه د اول ایت په اخر کښې صفاموجود دی چه راشئ زه تاسو له ستاسو حقونه درکړم اوتاسو آزادې کړم. په دې کښې دعلماؤاختلاف دې چه که حضورﷺ طلاق ورکړی نو بیا هغوی سره نکاح جائزده که نه؟ خوصحیح قول دا دې چه جائز ده چه په دې سره د طلاق هغه نتیجه ملاوشی یعنی د دنیاغوښتنه د دنیا ښائست اوورونق هغوی ته حاصل شی. والله اعلم. کله چه داآیت نازل شو اود دې حکم کله حضورﷺ ازواج مطهرات امهات المؤمنین رضی الله عنهن ته واورلو هغه وخت کښې د حضورﷺ نهه بیبیانې وې. پنځه قریشیه، عائشه حفصه ام حبیبه سوده اوام سلمه رضی الله عنهن او صفیه بنت حیی چه د قبیله نضیر وه اومیمونه بنت حارث چه هلالیه وه اوزینب بنت جحش کومه چه اسدیه وه اوجویریه بنت حارث رضی الله عنهن کومه چه مصطلقیه وه. (۱)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ | مَنْ يَّأْتِ | مِنْكُنَّ | بِفَاحِشَةٍ | مُّبَيِّنَةٍ |
| اے ښځو دنبی | هغه څوك چې راشي | ستاسو نه | كار دبې حيايئ | ښكاره ته |
| ......... اثې دپیغمبر بیبیانو په تاسو کښې چې څوک ښکاره ګناه اوکړی \| نو هغې ته به | | | | |
| يُّضٰعَفْ | لَهَا | الْعَذَابُ | ضِعْفَيْنِ ۭ | وَكَانَ ذٰلِكَ |
| دوچند به ورکړې کیږی | هغې ته | عذاب | په دوچند والی سره | او دې \| دا كار |
| دوه چنده سزا ورکولې شی \| ..................زاودا کار الله ﷻ ته | | | | |
| عَلَى اللّٰهِ | يَسِيْرًا ۝ | | | |
| په الله باندې | آسان | | | |
| ډیر آسان دې | | | | |

**قوله تعالى: يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّأْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ**

**امهات المؤمنين ته وعظ او نصيحت :-** د حضور اکرم ﷺ بیبیانویعنی د مؤمنانو میندوچه کله الله تعالی اودهغه رسول ﷺاود آخرت ښکلې کور خوښ کړواود حضور ﷺ په کور کښې د همیشه د پاره کیناستې نو اوس جناب الله عزوجل هغوی ته په دې آیت کښې وعظ کوی او ورته ښائی ستاسو معامله د عامو ښځو په شان نه ده. که فرض کړه تاسو د حضورﷺ په تابعدارئ کښې کوتاهی اوکړه اوياتاسو نه څه بداخلاقي اوشوه نوتاسو ته به په دنیااوآخرت کښې سزا وی. خکه چه ستاسو ډیرې لوئې درجې دی تاسو له د ګناه نه هم ډیر لرې کیدل پکاردی ګنی د مرتبې په شان به سختی هم زیاته وی. الله تعالی نه تولې خبرې آسانې دی دایادساتل پکاردی چه دا فرمان د شرط په توګه دې اود شرط واقع کیدل ضروری نه دی لکه چه ارشاد دې ﴿لَىِٕنْ اَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ۝﴾ (۲)اې نبی که تاشرك اوکړونوستا اعمال به بې کاره شی. د نبیانو ذکر کولوسره فرمائی ﴿ وَلَوْ اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝ (۳) که دوی شرك اوکړی نود دوی نیکئی به بیکاره شی. بل آیت کښې دی ﴿ قُلْ اِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ ۖ فَاَنَا اَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ۝﴾(۴)که د رحمان اولاد وی نوزه به د ټولونه اول عبادت کونکې شم. بل آیت کښې ارشاد

---

۱) الطبری: ۲۰/۲۵۲.
۲) ۳۹/الزمر:٦۵.
۳) ٦/الانعام:۸۸.
٤) ٤۳/الزخرف:۸۱.

دي ﴿لَوْ أَرَادَ اللَّهُ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفَىٰ مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ سُبْحَانَهُ ۖ هُوَ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ﴾ (۱) يعني كه د الله تعالى اولادمنظوررو نوهغه چه په خپل مخلوق كښې څوك غوښتل خوښ كړې به ئي وو. هغه پاك دې يوازې دې يودې هغه غالب دې او په ټولو باندې حكمران دې. په دې پنځو وارو آياتونوكښې د شرط سره بيان دې خوداسې شوى نه دى نه د انبياؤكرامو نه شرك ممكن دې نه د رسولانو د سردار حضرت محمد مصطفى ﷺ نه دا ممكن دى نه د الله تعالى اولاد. دغه شان د امهات المؤمنين باره كښې هم دا چه كوم فرمائيلې شوى دى كه په تاسوكښې څوك ښكاره فضول حركت اوكړى نوهغې ته به دوه چنده سزا كيږى دې نه دامه گڼرئ چه واقعي به دوى كښې د يوې نه څه داسې نافرمانى اوبداخلاقى شوې وى. نعوذبالله.

﴿الحمدلله﴾ د يويشتمې سپارې تفسير ختم شو.

---

(۱) ۳۹/الزمر: ۴۰.

وَمَنْ يَّقْنُتْ مِنْكُنَّ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتَعْمَلْ

او هغه خوك چي اطاعت كوي (حكم مني) | ستاسو نه | دالله | او دهغه درسول | او عمل كوي

او په تاسو كښي چي څوك دالله ﷻ او دهغهٔ د رسول ﷺ تابعداري كوي | .................. اونيك

صَالِحًا نُّؤْتِهَآ اَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ وَاَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا

نيك | وركوو به مونږ هغي لره | اجر دهغي | دوه ځله | او تيار كړي دي مونږ | هغي لره | رزق

عمل او كړي | نو مونږ به هغي ته ددې نه يو په دوه اجر وركړو | او د هغي دپاره مونږ د عزت

كَرِيْمًا ۝ يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَاَحَدٍ مِّنَ النِّسَآءِ اِنِ اتَّقَيْتُنَّ

ښه | اے ښځو دنبي | نهٔ يئ تاسو ايشان ديوي ښځي | دعامو ښځونه | كه يريږئ تاسو دالله نه

رزق تيار كړي دي | اتي د پيغمبر بيبيانو ! تاسو دنورو عامو ښځو په شان نه يئ | كه تاسو د الله نه ويريږئ

فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِيْ فِيْ قَلْبِهٖ

نو مهٔ كوئ تاسو پوستوالي | په خبرو كښي | چي طمع پيداشي | دهغه سړي | چي په زړه دهغه كښي

نو نرمي خبري مه كوئي | كني د كوم سړي په زړه كښي چي د (فسق) مرض وي دهغه به درته طمع

مَرَضٌ وَّقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۝ وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ

مرض دي (خرابي ده) | اووايئ | خبره | سيده صفا | او قرار اونيسئ | په كورونو خپلو كښي |

پيداشي | او صفا واضحه خبره كوئ | .................. او په خپلو كورونو كښي قلارې

وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى

اومهٔ ښكاره كوئ زينت | پشان دښكاره كولو دزينت | دجاهليت ددور | رومبني (پخواني) |

ناستي اوسيږئي | او دجاهليت د تيري زماني په شان ډول سنګار مه ښايئ | او د مونځونو

وَاَقِمْنَ الصَّلٰوةَ وَاٰتِيْنَ الزَّكٰوةَ وَاَطِعْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ اِنَّمَا

او قائيموئ | مونځ | او وركوئ زكات | او حكم مني دالله | او درسول دهغه | بيشكه |

پابندي كوئ | او زكاة وركوئي | اودالله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ حكمونه منئ

يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ

غواړي الله | چي لرې كړي | ستاسو نه | ګندګي (ګناه) | اي خاندان د نبي | او پاك كړي تاسو

الله ﷻ ته دا منظوره ده | چي ستاسو نه هره پليتي لرې كړي | اتي د پيغمبر دكور خلقو | او تاسو ښه

تَطْهِيْرًا ۝ وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلٰى فِيْ بُيُوْتِكُنَّ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ

په پاكولو سره | او ياد ساتئ | هغه | چي لوستلې كيږي | په كورونو ستاسو كښي | دايتونه دالله نه

پاكې اوساتي | .........او ستاسو په كورونو كښي چي دالله ﷻ ايتونه او د علم خبرې

وَالْحِكْمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ لَطِيْفًا خَبِيْرًا ۝

او دحكمت نه | بيشكه الله | دي | باريك ليدونكي | خبردار |

لوستلې شي اهغه ياد ساتئ | بيشكه الله ﷻ په هر راز پوهه په هرڅيز خبر دي |

قوله تعالى:- وَمَنْ يَقْنُتْ
**د فرمانبردارو دپاره دبل اجر دي**:-پدې آيت کښې الله ﷻ دخپل عدل اوفضل بيان فرماني او د حضور کرم ﷺ ازواج مطهراتو ته خطاب فرماني چه ستاسو په اطاعت اونيکوکارئ به تاسوته دبل اجر ملاويږي اوستاسو دپاره په جنت کښې د عزت روزي ده. ځکه چه دابه دالله تعالى د رسول ﷺ د درجو په وجه وي اوحضور ﷺ درجات خو به په عليين کښې وي چه د ټولوخلقو نه به اوچت وي. هم د دې نوم وسيله ده. داد جنت د ټولونه اعلي اود ټولونه اوچت منزل دې د کوم چت چه د الله ﷻ عرش دې.
قوله تعالى:- يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ
**د حضوراکرم ﷺ د بيبيانو اداب**:- الله ﷻ دخپل خوږ نبى دبيبيانوآداب ښائي اوټولې ښځې ددوى ماتحت دي په دې وجه دا احکام د ټولو مسلمانانو ښځود پاره دي. فرماني چه په تاسوکښې ځوک پرهيزګاري کوي هغه د ډيرې لوئي فضيلت اومرتبې والا ده. سړو سره چه کله تاسو له څه خبره کول پکاروي نو په آوازجوړولو سره خبره مه کوئي دچا په زړونوکښې چه بيماري ده دهغوى به طمع پيداشي بلکه ښه خبره اود دستور مطابق ئې کوئي. نوښځوله د پردو سړو سره په مزه او ښکلي آواز کښې خبرې کول منع دي. په يوځاى کيدو سره د مينې خبرې هغه صرف خپل خاوندسره کولې شى.
قوله تعالى:- وَقَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ
**بې دشرعى ضرورت نه دکور نه مه اوځئ**:بيافرماني بغيرد څه ضرورت د کار نه بهر ته مه اوځئ. جمات ته دمانځه دپاره راتلل هم شرعى ضرورت دې.لکه چه په حديث شريف کښې دي دالله ﷻوينځې د الله ﷻ د جماتونونه مه بندوئي. خوهغوى له پکاردي چه سيدا ساده ځنګه چه په کورونو کښې وي دغه شان راشي[1] په يوروايت کښې دي چه دهغوى دپاره کوربهتردې[2] بزارکښې دي چه ښځې حاضرې شوې اورسول الله ﷺ ته ئې اوونيل د جهادوغيره ټول فضيلتونه خوسړو يوړل اوس تاسو مونږ ته هم څه عمل اوښائې په کوم سره چه مونږ د مجاهدينودرجې حاصلې کړې شو. حضور ﷺ اوفرمائيل چه تاسو کښې څوک په خپل کورکښې پرده کښې په عزت سره ناسته وي هغه به د جهادفضيلت حاصل کړي[3] ترمذى وغيره کښې رسول الله ﷺ فرماني ښځې دسر نه واخله ترپښوپورې د پردې څيز دې. کله چه داد کور نه بهرقدم اوباسي نوشيطان ورته ګوري. دا د ټولونه زياته هغه وخت الله ﷻ ته نيزدې وي کله چه دادکور په دننه کمره کښې وي.([4]) ابوداؤد وغيره کښې دي د ښځې دکور دننه کوټې مونځ د کورد مونځ نه بهتردې اود کوټې مونځ د کورد غولي صحن د مونځ نه بهتردې([5]) په جاهليت کښې به ښځې بې پردې ګرځيدې. اوس اسلام بې پردګى حرام کړه په ناز اونخروسره ګرځيدل منع دي.لوپټه ئې په مرئى کښې واچوله خو راغونډه ئې نه کړه د څه په وجه چه د مرئى اوغوږونوکالى دنورو په نظر راځى. دادجاهليت سنګارو د کوم نه چه په دې آيت کښې منع کړې شوى دي.
**يو عجيبه روايت**:- ابن عباس ؓ وغيره نه روايت دې د حضرت نوح ؑ اوحضرت ادريس ؑ په مينځ کښې د زروکالو زمانه وه. په دې زمانه کښې دحضرت آدم ؑ دوه نسلونه آبادوو يوپه غرباندې يوپه نرمه زمکه باندې. د غرونو خلق ښائسته وو اوښځې تورې وې اود زمکې ښځې ښائسته وې اود سړو رنګونه غنم رنګې وو. ابليس د انسان په شکل کښې د هغوى د دهوکه کولو د پاره د نرمې زمکې

[1]) ابوداؤد كتاب الصلاة باب ماجاء في خروج النساء الى المساجد:٥٦٥وسنده حسن.
[2]) ابوداؤدحواله سابق:٥٦٧وسنده صحيح.
[3]) البزار:١٤٧٥ابن حبان:١٩٩/١، مجمع الزوائد:٣٠٧/٤،مسندابي يعلى:٣٤١٦،
[4]) ترمذى كتاب الرضاع باب استشراف الشيطان المراة اذا خرجت: ١١٧٣،
[5]) ابوداؤد كتاب الصلاة باب التشديدفي ذلك:٥٧٠

خلقو له راغلو اود یوسړی غلام جوړشو اوسیدو بیا هغه د شپیلئی په شان یوخیز جوړکړو اوهغه به نی غږولو. ددی په آواز باندې خلق مبین شو او راجمع شو. یوه ورځ د میلې مقرره کړې شوه چه په هغې کښې په زرګونو ښځې اوسړی راجمع شو. اتفاقی توګه باندې یوه ورځ یود غرسړی هم راغلو اود هغوی ښځې نی اولیدلې نو واپس لاړو او په خپلوخلقو کښې نی د هغوی ښانست نی مشهورکړو اوس هغه خلق په کثرت سره راتلل اوپه مزه مزه په سړو اوښځوکښې ګډوډوالې زیات شو اود بدکارئی او زناکارئی عام رواج اوشو.

**قوله تعالیٰ:- وَأَقِمْنَ الصَّلٰوةَ**

**د رسوم جاهلیت نه پس نور احکام:-** هم دا د جاهلیت سنګار وود کوم نه چه دا آیت بندول کوی. د دې کارونود بندیدو نه پس اوس څه احکام بیانولې شی چه دالله ﷻ په عبادت کښې د ټولونه لوئ عبادت مونځ دې.د دې پابندی کوه اودا په ډیر ښه شان سره اداکونی.دغه شان دمخلوق سره هم نیک سلوك کوئی یعنی زکوٰة ورکوئی.د دې خاص احکامو ذکرکولوسره بیا په عام توګه نی د الله ﷻ اود رسول الله ﷺ د فرمانبردارئی حکم ورکړو. بیانی اوفرمائیل الله ﷻ ددې اهل بیتو دهر قسم خیری لرې کولو اراده کړې ده هغه به بالکل تاسو پاك صاف کړی.

**اهل بیت نه مراد څوک دی؟:-** دا آیت په دې خبره باندې نص دې چه د رسول الله ﷺ بیبیانې د دې آیاتونو په وجه په اهل بیت کښې داخلې دی.ځکه چه دا آیت هم د دوی باره کښې نازل شوې دې. د آیت شان نزول خو د آیت په حکم کښې داخل وی.بعضې وائی چه صرف هغه داخلیږی اوبعضې وائی هغوی هم او د هغوی نه سوا هم اودا دویم قول ډیر صحیح دې. حضرت عکرمه رحمه الله خو به په بازارونوکښې آواز کولو سره ګرځیدل. چه دا آیت د حضور ﷺ د بیبیانو باره کښې په خاص توګه نازل شوې دې. (ابن جریر)ابن ابی حاتم کښې دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه هم دا روایت دې اوعکرمه رحمه الله خوتردې ځائ پورې فرمائی چه څوك غواړی ماسره دې مباهله اوکړی دا آیت هم د حضورﷺ د بیبیانود شان باره کښې نازل شوې دې[1]که د دې قول نه دا مطلب دې چه شان نزول هم دا دې بل نه دې نودا ټیك دی او که چرې د دې نه مراد داوی چه په اهل بیتوکښې ددوی نه سوا بل څوك داخل نه دی نوپدې کښې نظر دې ځکه چه په احادیثوکښې د اهل بیتو کښې د ازواج مطهرات رضی الله عنهن نه بغیر نورهم داخل دی. مسنداحمد اوترمذی کښې دی رسول الله ﷺ چه به کله د سحر مانځه له وتلو نود حضرت فاطمه رضی الله عنها دروازې ته به چه اورسیدونو فرمائیل به نی اې اهل بیت د مانځه وخت اوشو بیا به نی د دې پاك آیت تلاوت کولو[2]امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن غریب وائی.دابن جریر رحمه الله هم پدې یوحدیث کښې د اووه میاشتو بیان دې. په دې کښې یوراوی ابوداؤد اعمی نفیع بن حارث کذاب دې. داروایت ټیك نه دې.

**د اهل بیتو فضیلت او ددې متعلق احادیث:-** مسندکښې دی چه شدادبن عماروائی زه یوځل حضرت واثله بن اسقع رضی الله عنه له لاړم. هغه وخت هلته څه نورخلق هم ناست وو اود حضرت علی رضی الله عنه ذکر کیدلو هغه دوی ته بدې ردې ونیلې.ماهم دهغوی ملګرتیااوکړه.کله چه هغه خلق لاړل نوماته واثله رضی الله عنه اوفرمائیل تاهم د حضرت علی رضی الله عنه په شان کښې د ګستاخئی الفاظ اووئیل؟ ماوئیل اوماهم د ټولو په ژبه کښې خپله ژبه یو ځائ کړه. ونی فرمائیل چه واوره ماچه څه لیدلی دی هغه تاته اوروم. یوه ورځ دحضرت علی رضی الله عنه کور ته لاړم نومعلومه شوه چه هغوی دحضوراکرم ﷺ مجلس ته تلی دی. زه د هغوی په انتظارکښې کیناستم لږساعت پس مې اوکتل چه رسول الله ﷺ حضرت علی رضی الله عنه حضرت حسن رضی الله عنه اوحضرت حسین

[1] الطبری: ۲۶۷/۲۰.

[2] احمد:۲۵۹/۳، ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة الاحزاب:۳۲۰۶مسندابی یعلی:۳۹۷۸، مسندالطیالسی:۲۰۵۹، المعجم الکبیر: ۲۶۷۱، مشکل الاثار:۷۷٤،



ﷺ راروان دي. دوارو ماشومانو دهغوی ګوته نیولې وه. حضور ﷺ خو حضرت علي ﷺ اوحضرت فاطمه ﷺ خپلې مخې ته کینول اودواړه نمسي په خپلو پښوباندې کینول او یوه کپړه ئې پرې واچوله بیائې د دې آیت تلاوت اوکړو وئې فرمائیل اې الله ﷻ هم دا دی زما اهل بیت اوزما اهل بیت ډیر حق دار دی.
(۱) په دویم روایت کښې دومره زیاتوالې هم دې چه حضرت واثله ﷺ فرمائی ماچه دااولیدل نواومې وئیل یارسول الله ﷺ زه هم ستاسو د اهل بیتونه یم حضور ﷺ اوفرمائیل اوته هم زمادااهل بیتونه ئې حضرت واثله ﷺ فرمائی چه د رسول الله ﷺ دا فرمان زما د پاره ډیر لوئ د امید دې(۲)یوبل روایت کښې دی حضرت واثله ﷺ فرمائی زه حضور ﷺ سره ووم چه حضرت علي ﷺ حضرت فاطمه ﷺ حضرت حسن ﷺ حضرت حسین ﷺ راغله. حضور ﷺ خپل څادر په هغوی باندې واچولو وئې فرمائیل اې الله دا زما اهل اوعیال دې اې الله ﷻ دوی نه ناپاکی لرې کړه اودوی پاک کړه. ما وئیل زه هم. حضور ﷺ اوفرمائیل اوته هم. زما په نیزدتېولونه زیات مضبوط عمل زما هم دا دې. (۳)
مسنداحمدکښې دی حضرت ام سلمه ﷺ فرمائی حضور ﷺ زماپه کورکښې ووحضرت فاطمه ﷺ شیره یوه ډکه پتیله راوړه نو حضور اوفرمائیل چه خپل خاوند او خپل دواړوماشومان هم راوغواړه نو هغوی هم راغله او خوراك ئې شروع کړو. حضور ﷺ په خپله بستره باندې وو لاندې ئې د خیبر یوڅادر خورکړې وو. ما په کوټه کښې مونځ کولو چه دا آیت نازل شو. حضور ﷺ په هغوی باندې څادر واچولو او د څادرنه ئې یولاس رابهرکړواود آسمان طرف ته ئې اوچت کړو اودا دعائې اوغوښتله یاالله دا زما اهل بیت اوحمایتیان دی ته ددوی نه ناپاکی لرې کړه اودوی ښکاره کړه.ماخپل سر دکوټې نه رابهر کړو اومې وئیل یارسول الله ﷺ زه هم تاسو ټولو سره یم.حضوراکرم ﷺ اوفرمائیل یقیناً ته بهترنی طرف ته ئې في الواقع ته د خیرطرف ته ئې(۴)په دې روایت کښې دعطاء د استاذ نوم نشته چه معلومه شي چه هغه څنګه راوی دې باقي راویان ثقه دی. په بل سندسره هم د دې ام سلمه ﷺ نه روایت دې چه یوځل د هغې په وړاندې د حضرت علي ﷺ ذکرراغلو نوهغې وئیل چه آیت تطهیرخوزما په کورکښې نازل شوې دې.حضور ﷺ زماکورته راغلواووئی فرمائیل چه بل چاته کورته د راتلواجازت مه ورکوه. لږ ساعت پس حضرت فاطمه ﷺ راغله اوس په ښه ده ما لورد پلار نه څنګه منع کوله بیاحضرت حسن ﷺ راغلونمسې د نیکه نه څوك منع کړې؟بیاحضرت امام حسین ﷺ راغلوماهغه هم منع نه کړو. بیا حضرت علي ﷺ راغلو نوهغه مې هم منع نه کړې شو. کله چه دا ټول راجمع شو نو حضور ﷺ چه کوم څادراغوستې وو هم په هغې کښې ټول راپټ کړل اووئی فرمائیل یاالله دازما اهل بیت دی دوی نه پلیتی لرې کړې اودوی ښه پاك صفا کړې. نودا آیت هم هغه وخت نازل شو کله چه دوی په څادر کښې راجمع شوې وو. ماوئیل یارسول الله ﷺ زه هم. پته نه لګی چه رسول الله ﷺ په دې خوشحاله نه شو او وئی فرمائیل ته دخیرطرف ته ئې.
دمسندپه یوبل روایت کښې دی چه زما په کورکښې نبی کریم ﷺ موجود ووچه خادم راغلو خبرئې اوکړو چه حضرت فاطمه ﷺ اوحضرت علي ﷺ راغلی دی. حضور ﷺ ماته اوفرمائیل یوطرف ته شه زما اهل بیت راغله. زه د کور په یو ګوټ کښې کیناستم کله چه هغه دواړه ماشومانو اودې دواړو حضراتو تشریف راوړو حضور ﷺ دواړه ماشومان په غیږ کښې واخستل اومینه ئې ورسره اوکړه یو لاس ئې د حضرت علي ﷺ اوبل د حضرت فاطمه ﷺ په سټ کښې واچولو اودواړو سر ئې هم مینه اوکړه او

(۱) احمد:۱۰۷/۴ ،مسندابي يعلى، طبراني: ۲۶۷۰، بيهقي:۱۵۲/۲، حاكم:۱۴۷/۳.
(۲) تفسیرابن جریر:۶/۲۲
(۳) المعجم الكبير:۲۶۶۹ مجمع الزوائد:۱۶۸/۹.
(۴) احمد:۲۹۲/۶وهو حديث صحيح.

په تولو نی یوتور څادر واچولو وئی فرمائیل اې الله ستا طرف ته نه چه د اور طرف ته زه اوزما اهل بیت. ماوئیل زه هم؟ وئی فرمائیل اوته هم(۱) په یوبل روایت کښې دی چه زه دې وخت کښې د کور په دروازه کښې ناسته ووم اوما وئیل یارسول الله ﷺ آیا زه په اهل بیتوکښې یم حضورﷺ اوفرمائیل چه ته د خیر طرف ته ئې اود نبی په بیبیانوکښې ئې. یوبل روایت کښې دی چه ما وئیل ما هم په دوی کښې شامله کړه نوونې فرمائیل ته زما اهل ئې. د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه حضورﷺ بو تورڅادر په سرکړو او هم سحر سحر اووتلو اودا څلورواړه ئې په خپل څادر کښې راپټ کړل اودا آیت ئې اولوستلو(۲) دعائشه رضی الله عنها نه د علی رضی الله عنه باره کښې چاتپوس اوکړو نوهغوی اوفرمائیل هغه رسول الله ﷺ ته د ټولونه زیات خوښ دې د هغوی په کورکښې د حضورﷺ لوربی بی ده چه د ټولونه زیاته دحضور ﷺ محبوب اوخوښه وه.بیائې دڅادر واقعه بیان کړه اوونې فرمائیل چه زه نیزدې ورغلم اومې وئیل یا رسول الله ﷺ زه هم ستااهل بیتو نه یم وئې فرمائیل لرې شه ته خویقینًا په خیربانديې ئې.

د حضرت ابوسعید رضی الله عنه نه روایت دې چه حضورﷺ اوفرمائیل زمااود دې څلورو باره کښې دا آیت نازل شوې دې. یوبل سندسره دا د ابوسعید رضی الله عنه خپل قول مراد دې. والله اعلم. حضرت سعد رضی الله عنه فرمائی کله چه په حضورﷺ باندې وحی نازل شوه نوحضورﷺ دا څلور واړه په خپله کپړه کښې واخستل اوونې فرمائیل یاربه دا زما اهل دی اوزما اهل بیت دی. (ابن جریر)

صحیح مسلم شریف کښې دی یزیدبن حیان رحمه الله فرمائی زه اوحصین ابن سبره اوعمربن مسلمه یوځائ شو اوحضرت زیدبن ارقم رضی الله عنه له لاړو. حصین وئیل اې یزید تاته ځودیرې ښیګړې ملاوشوې. تاسو د حضورﷺ زیارت اوکړو د حضورﷺ احادیث دې واوریدل حضورﷺ سره دې جهاد اوکړو د حضورﷺ په امامت کښې دې مونځونه اوکړل غرض دا چه تا ډیر خیراوبرکت حاصل کړو. ښه ده مونږ ته څو څه حدیث واوروه. هغوی اوفرمائیل وراره اوس زما عمر ډیر شوې دې دحضورﷺ زمانه لرې شوه بعضې خبرې مې د ذهن نه تلی دی. اوس ته داسې اوکړه چه کومې خبرې زه پخپله بیان کړم هغه قبولې کړه ګنی نو ما مه تنګه وه. واوره د مکې اومدینې په مینځ کښې یو د اوبوځائ چه هغې ته خم وائی حضورﷺ په ولاړه مونږ ته یوه خطبه اوفرمائیله د الله ﷻ د حمد اوثنا اووعظ اونصحیت نه پس ئې اوفرمائیل زه یوانسان یم ډیره ممکن ده چه ماله د الله ﷻ یوقاصد راشی اوزه د هغه اومنم. زه په تاسو کښې دوه څیزونه پریږدم اول خوکتاب الله کوم کښې چه هدایت اونور دې.تاسو د الله ﷻ کتاب واخلئ اودا په مضبوطیاسره اونیسئ. بیا حضورﷺ د کتاب الله ډیرزیات رغبت ورکړو او د هغې طرف ته ئې مونږ ښه متوجه کړو. بیافرمائی چه د خپلو اهل بیتو باره کښې تاسو ته د الله ﷻ یاد درکوم درې ځل ئې هم دغه کلمه اوفرمائیله. نوحصین دحضرت زید نه تپوس اوکړو د حضورﷺ اهل بیت څوک دی؟

د اهل بیتونه کوم خلق مراد دی؟:- آیا د حضورﷺ بیبیانې د هغوی اهل بیت نه دی؟ وئې فرمائیل چه د حضور ﷺ بیبیانې خو د هغوی ﷺ اهل بیت دی خود حضورﷺ اهل بیت هغه دی په کومو باندې چه د حضورﷺ نه پس صدقه خوړل حرامه ده. تپوس ئې اوکړو هغه څوك دی؟وئې فرمائیل آل علی رضی الله عنه آل عقیل رضی الله عنه آل جعفر رضی الله عنه آل عباس رضی الله عنه. تپوس ئې اوکړو چه په دې ټولوباندې د هغوی نه پس صدقه خوړل حرام دی. وئې وئیل او. په دویم سند سره داهم روایت دې چه ماتپوس اوکړو چه د حضورﷺ بیبیانې هم دهغوی په اهل بیتوکښې داخل دی؟ وئیل نه. په الله ﷻ قسم د ښځې خو داخبره ده چه هغه خپل خاوند سره ډیره موده وی خوکه هغه بیا طلاق ورکړی نوخپل مور پلارکره اوخپل قوم له ځی. دحضورﷺ اهل

---

(۱) احمد:۶/۲۹۶

(۲) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب فضائل اهل بیت النبی ﷺ:۲۴۲۴.(مسلم وغیره)

بيت دهغوى اصل اوعصبه دى په چاباندې چه دحضورﷺ نه پس صدقه حرامه ده[1] په دې روايت كښې هم دغه دى خو اولني روايت اولى دې اوهم دا اخستل ټيك دى اودا په دويم كښې چه كوم دى دې نه مراد صرف په حديث كښې چه د كومواهل بيتو ذكر دې هغه دى. ځكه هلته خو هغه آل مراد دې په چا چه صدقه خوړل حرام دى. يادا چه مراد صرف بيبيانې نه دى بلكه هغوى سره د هغه او آل دى. هم دا خبره ډيره صحيح ده او په دې سره په دې روايت اود دې نه په وړاندې روايت كښې جمع والې هم كيږى. اوقرآن او اولنى احاديث هم راجمع كيږى. خوكه په دې صورت كښې د دې احاديثو صحت تسليم كړې شى ځكه چه د دې په بعضې اسنادو كښې نظردې. والله اعلم. كوم سړى ته چه د معرفت نورحاصل وى او په قرآن پاك كښې ورته پوهه هم حاصله وى هغه به يقينًا په يونظر پوهه شى چه په دې آيت كښې دحضور اكرم ﷺ بيبيانې بې شكه شبهې داخل دې د دې د پاره چه دا د پورته كلام هم هغوى سره دې اوهم د هغوى باره كښې روان دى. هم دا وجه ده چه د دې نه پس نى اوفرمائيل چه د الله ﷻ آياتونه چه ستاسو كورونو كښې يې وحى كيږى اودروسول ﷺ خبرې دكوم درس چه ستاسو په كورونو كښې كيږى هغه ياد اوساتئى او په هغې باندې عمل اوكړئى.

**قران پاك د عائشه رضى الله عنها د بسترې نه علاوه د بل چا په بستره باندې نه دې نازل شوې**:-نود آيات الله اوحكمت نه مراد دقتاده رحمه الله وغيره دقول مطابق كتاب اوسنت دې[2]دايوخاص خصوصيت دې چه دهغوى نه بغيربل چاته نه دې ملاو د هغوى په كورونوكښې دالله ﷻ وحى او دالله ﷻ رحمتونه نازليږى او په دې كښې هم دا عزت حضرت ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ته په طريقه اولى اود ټولو نه زيات حاصل دې ځكه چه په حديث شريف كښې صفاذكردې چه د بل چا په بستره باندې په حضورﷺ باندې وحى نه ده راغلې بغيرد هغې د بسترې نه. [3] دا په دې وجه هم چه حضوراكرم ﷺ د دې نه بغيريلې پيغلې سره نكاح نه وه كړې د هغې بستره بغيرد رسول الله ﷺ نه د بل چا د پاره نه وه. نود دې درجې د اوچت والى او زياتې مرتبې په وجه هغه په صحيح توګه حقداره وه.

كله چه د حضورﷺ بيبيانې د هغوىﷺ اهل بيت شوې نودحضورﷺ نيزدې خپلوان په طريقه اولى سره د هغوىﷺ اهل بيت دى. لكه چه په حديث كښې تيرشو چه زما اهل بيت ډير حقدار دى. د دې په مثال كښې دا آيت په ټيك توګه پيش كيدې شى ﴿لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَنْ تَقُوْمَ فِيْهِ ۚ فِيْهِ رِجَالٌ يُّحِبُّوْنَ أَنْ يَّتَطَهَّرُوْا ۚ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ﴾[4]داخونازل شوې د مسجدقبا باره كښې لكه ځنګه چه صفا صفا په احاديثو كښې موجود دى خوپه صحيح مسلم شريف كښې دى چه كله دحضورﷺ نه سوال اوشو چه د دې جمات نه كوم يو جمات مراد دې نوحضورﷺ اوفرمائيل چه هغه زما جمات يعنى مسجد نبوى ﷺ [5] نو چه كوم صفت په مسجدقبا كښې وو په مسجدنبوىﷺ كښې هم دې په دې وجه نى دا جمات هم په دې نوم سره په دې آيت كښې داخل كړو.

**د حسن رضي الله عنه خطبه**:- ابن ابى حاتم كښې دى د حضرت على رضي الله عنه د شهادت نه پس حضرت حسن رضي الله عنه خليفه جوړكړې شو. يوځل هغوى مونځ وركولو د بنو اسديوسړى راټوپ كړو راغلواود سجدې په حالت كښې په هغوى چه خنجر ورخښ كړو. هغوى په نرمه غوښه كښې اولګيدل او په دې سره هغوى څومياشتې بيمار وو كله چه ښه شو نوجمات ته راغلو او په منبركيناستو خطبه نى وركړه وئى فرمائيل اې

---

[1] صحيح مسلم كتاب فضائل الصابة باب من فضائل على بن ابى طالب رضي الله عنه:۲۴۰۸.
[2] الطبرى:۲۰/۲۶۸.
[3] صحيح بخارى كتاب فضائل اصحاب النبى ﷺ باب فضل عائشه:۳۷۷۵.
[4] ۹/التوبه:۱۰۸.
[5] صحيح مسلم كتاب الحج باب بيان المسجد الذى اسس على التقوى...:۱۳۹۸.

عراقیانو زمونږ باره کښې د الله ﷻ نه اوویرېږئ. مونږ ستاسو حاکمان یو ستاسو میلمانه یو مونږ اهل بیت یودچا باره کښې چه آیت ﴿ إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا ﴾[1] نازل شوې دې په دې باندې هغوی ښه زور واچولو اودا ئې باربار اداکړو په کوم سره چه د جمات خلق په ژړا شو. یو خل علي بن حسین ﷫ یوشامي ته فرمائیلي وو آیا تاد سورت احزاب آیت تطهیر نه دې لوستلې؟ هغه وئیل او ولې د هغې نه مراد ته ئې؟ وئې فرمائیل او الله ﷻ د ډیر لطف اوکرم لوئ علم او پوره خبر والا دې هغه پوهه شو چه تاسو دهغه دلطف اوکرم اهل ئې څکه چه هغه تاسوته دانعمتونه درکړې اودا فضیلتونه ئې تاسو ته درکړې.

**مذکوره ایت مبارک کښې پاکې بیبیانې مراد دې:**-نود آیت معنی په مطابق د تفسیرابن جریر دا شوه چه اې د نبي بیبیانو! د الله ﷻ نعمت په تاسو باندې دې هغه تاسو یادکړئ تاسو ئې په داسې کور کښې آباد کړئ کوم ځائ چه دالله تعالی آیاتونه اود هغه حکمت لوستلې شي. تاسو له دالله تعالی په دې نعمت باندې شکر کولوپکاردی اود هغه حمدوئیل پکاردی چه په تاسو باندې د الله ﷻ مهرباني اوفضل دې چه هغه تاسو په دې کورونوکښې آبادکړئ[2] د حکمت نه مراد سنت اواحادیث دی الله ﷻ د انجام نه خبردار دې په دې وجه په خپل پوره اوصحیح علم سره اوتللئي اود خپل نبي ﷺ د بیبیانو جوړولو پاره ئې خوښې کړې نودا هم د الله ﷻ په تاسو باندې احسان دې چه لطیف او خبیردې دهر یو خیز جز(یوه حصه) اوکل (ټول) دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّ الْمُسْلِمِينَ | وَالْمُسْلِمَاتِ | وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ | وَالْقَانِتِينَ |
| بیشکه مسلمانان سړي اومسلماناني ښځې | او مومناني سړي | او مومناني ښځې | او فرمان منونکي سړي |
| بیشکه مسلمانان سړي اومسلماناني ښځې ، | او مومنان سړي او مومناني ښځې | | او تابعدار سړي |
| وَالْقَانِتَاتِ | وَالصَّادِقِينَ | وَالصَّادِقَاتِ | وَالصَّابِرِينَ |
| او فرمان منونکي ښځې | او رښتیني سړي | او رښتیني ښځې | او صبر کونکي سړي |
| او تابعدارې ښځې ، | او رښتیني سړي او ریښتینې ښځې | | او صابره سړي |
| وَالصَّابِرَاتِ | وَالْخَاشِعِينَ | وَالْخَاشِعَاتِ | وَالْمُتَصَدِّقِينَ |
| او صبر کونکې ښځې | او عاجزي کونکي سړي | او عاجزي کونکې ښځې | او صدقه ورکونکي سړي |
| او صابره ښځې | او ویریدنکي سړي او ویریدونکې ښځې | | او خیرات کونکي سړي |
| وَالْمُتَصَدِّقَاتِ | وَالصَّائِمِينَ | وَالصَّائِمَاتِ | وَالْحَافِظِينَ |
| او صدقه ورکونکې ښځې | او روژه نیونکي سړي | او روژه نیونکې ښځې | او حفاظت کونکي سړي |
| اوخیرات کونکې ښځې ، | او روژه دار سړي او روژه دارې ښځې | | اودخپلو شرمګاهونو حفاظت |
| فُرُوجَهُمْ | وَالْحَافِظَاتِ | وَالذَّاكِرِينَ اللَّهَ | كَثِيرًا |
| شرم دځایونوخپلو | او حفاظت کونکې ښځې | او یادونکي سړي الله لره | ډیر |
| کونکي سړي اوحفاظت کونکې ښځې | ................اوالله ﷻ ډیر ډیر یادونکي سړي | | |

[1] ۳۳/الاحزاب: ۳۳.
[2] الطبری: ۲۶۸/۲۰.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّالذّٰكِرٰتِ ۙ | اَعَدَّاللّٰهُ | لَهُمْ | مَّغْفِرَةً | وَّاَجْرًا | عَظِيْمًا۝ |
| او يادونكي ښځي | تيار كړي دي الله | دپاره دهغوی | ښښنه | او اجر | لوی |

او ښځي | الله ﷻ د دې ټولو دپاره لويه ښښنه او لوئي اجر تيار كړي دي

قوله تعالى:- اِنَّ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمٰتِ

**دمومنانو نارینو او ښځو فضائل او علامتونه:-** ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها يو خل حضور ﷺ ته عرض اوكړو آخر ددې څه وجه ده چه هم د سړو ذكر په قرآن كښې راځي اوزمونږ د ښځو خو هډو ذكر نه كيږي. يوه ورځ زه په خپل كور كښې ناسته ووم خپل سرمې ټيك كولو چه ما دحضوراكرم ﷺ آواز په منبر باندې واوريدو. ما ويښته خوهم داسې راغونډ كړل او په حجره يعني كوټه كښې كيناستم اود رسول الله ﷺ خبرې مې اوريدې حضور ﷺ دغه وخت هم دا آيت تلاوت فرمائيلو(۱) په نسائي وغيره كښې نور ډير روايتونه د هغوی نه مختصر نقل دی. يوروايت كښې دی چه يو څو ښځو حضور ﷺ ته داوئيلې وو. بل روايت كښې دی چه نورو ښځوازواج مطهرات رضي الله عنهن ته نی وئيلې وو.

**ايمان او اسلام جدا جدا دی:-** اسلام اوايمان جدا جدابيانول دليل دی ددې خبرې چه ايمان د اسلام غير دې اوايمان داسلام نه مخصوص اوممتاز دې ﴿ قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا ۭ قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۭ وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْــــًٔا ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝﴾(۲) والا آيت اود بخاری او مسلم حديث چه زناكارد زنا په وخت كښې مؤمن نه وی.(۳) بيا په دې امر باندې اجماع ده چه په زناسره كفر نه لازميږي.دا په دې باندې دليل دې اومونږ دبخاری په شرح كښې دا ثبت كړی دی(دا يادساتئ چه په دې كښې هغه وخت فرق وی كله چه حقيقي اسلام نه وی. لكه چه امام المحدثين امام بخاری رحمه الله صحيح بخاری كتاب الايمان كښې په كثيرو دلائلوسره ثابت كړې دې. والله اعلم. مترجم)

﴿وَالْقٰنِتِيْنَ﴾ **د قنوت مطلب:-** د قنوت نه مراد په سكون سره اطاعت كول دی لكه ﴿اَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ اٰنَاۗءَ الَّيْلِ سَاجِدًا وَّقَاۗىِٕمًا يَّحْذَرُ الْاٰخِرَةَ وَيَرْجُوْا رَحْمَةَ رَبِّهٖ ۭ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۭ اِنَّمَا يَتَذَكَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ ۝﴾(۴) كښې دی. بل ارشاد دې﴿لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ۝﴾(۵) يعني دآسمان اوزمكې هريوځيزدالله ﷻ فرمانبردار دې. بيا ارشاد فرمائی ﴿يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ۝﴾(۶) يوبل ارشاددې ﴿وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ۝﴾(۷) يعنی د الله ﷻ په وړاندې په آدب فرمانبردارئی په صورت كښې اودريږه. نود اسلام د پاسه مرتبه د ايمان ده او دې په اجتماع سره په انسان كښې د حكم منلواو تابعدارئی كولو ماده پيداكيږي.

﴿وَالصّٰدِقِيْنَ﴾ رښتيا وئيل ډير غټ صفت دې:- دخبرو صداقت د الله ﷻ ډيرخوښ دی اودا عادت په هر شان سره محمود دې.په كبارصحابه كرامو رضي الله عنهم كښې خوهغه بزرگان هم وو كوموچه دجاهليت په زمانه كښې هم دروغ نه وو وئيلي. رښتونولی د ايمان نښه ده اودروغ د نفاق علامت دې. رښتونې خلاصيږي رښتياوايه دنيكئ طرف ته لارخودنه كوی اونيكی د جنت طرف ته. د دروغونه بچ شه دروغ دبدكارئی طرف ته لارخودنه كوی. اوفسق اوفجور انسان د دوزخ طرف ته اوړی.انسان په رښتيا وئيلوسره او هر

---

۱) احمد:۶/۳۰۵وسنده صحيح.
۲) ۴۹/الحجرات:۱۴.
۳) صحيح بخاری كتاب المحاربين باب اثم الزناة:۶۸۰۹، صحيح مسلم:۵۷، ابوداوٗد:۴۶۸۹، ترمذی:۲۶۲۵،
۴) ۳۹/الزمر:۹.
۵) ۳۰/الروم :۲۶.
۶) ۳/آل عمران:۴۳.
۷) ۲/البقرة:۲۳۸.

وخت د رښتیاو اراده کولوسره د الله ﷻ په نیز باندې صدیق لیکلې کیږی. دروغ ویونکې اود دروغو ارادې کونکې د الله ﷻ په نیز دروغژن لیکلې شی.[1] نور هم په دې باره کښې ډیر څه دی.

(وَالصّٰبِرِيْنَ) د صبر مقام:-په دې علم باندې چه د تقدیر لیك نه ورانیږی.دټولو نه لوئ صبر دغم د شروع په وخت کښې دې اوددې اجر زیات دې. بیا چه څنګه څنګه وخت تیریږی هغه ته هسې خو صبر راځی. د خشوع نه مراد تسکین دلجمعی تواضع، عاجزی ده اودا په انسان کښې هغه وخت راځی چه کله نی په زړه کښې دالله ﷻ ویره وی اورب هروخت حاضراوناظرګڼړی اودغه شان دالله ﷻ عبادت کونکې وی لکه چه هغه الله ﷻ ته ګوری اوکه دانه وی نوکم نه کم په دې درجه کښې خودې وی چه الله ﷻ هغه ته ګوری.

(وَالْخٰشِعِيْنَ) خشوع هم لوئې صفت دې:- دصدقې نه مراد محتاجو مسکینا نوته ضعیفانوته چه دهغوی څه ګټه نه وې اونه د هغوی څوك د ګټې والا وی. هغوی ته خپل فالتو مال ورکوه په دې نیت سره چه د الله ﷻ اطاعت وی اود هغه دمخلوق کار جوړشی.

دبخاری اومسلم په حدیث کښې دی اووه قسمه خلقو له به الله ﷻ د عرش د سوری لاندې ځایٔ ورکوی په کومه ورځ چه به د هغه د سورې نه بغیرېل هیڅ سورې نه وی. په دوی کښې یوهغه دې چه صدقه ورکوی خوداسې په پټه چه د ښی لاس په خرڅ کولوباندې ګس لاس ته خبراونه رسی[2] یوبل حدیث کښې دی چه صدقه ګناهونه داسې ختموی لکه څنګه چه اوبه اُور مړکوی[3] پدې باره کښې نور هم ډیر احادیث دی چه په خپل خپل ځایٔ موجوددی. د روژې باره کښې په حدیث کښې دی داد بدن زکوة دې[4] یعنی دا پاك صفاکوی اوطبعاً هم ردی ګډوډوالې ختموی. حضرت سعید بن جبیر رحمه الله فرمانی د رمضان روژې ساتلوسره چه څوك هره میاشت درې روژې اوساتی هغه ﴿وَالصَّآىِٕمِيْنَ وَالصّٰٓىِٕمٰتِ وَالْحٰفِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحٰفِظٰتِ وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا﴾[5] کښې داخل شو[6] روژه شهوت هم کمه وی. په حدیث کښې دی اې ځوانانوپه تاسوکښې چه د چا طاقت وی نوهغه دې نکاح اوکړی دې د پاره چه هغه نظر ښکته وی اوپاکدامنی ورته حاصله شی اودچا چه د نکاح طاقت نه وی هغه دې روژې اوساتی هم دا د هغه د پاره لکه خصی کیدل چه وی[7] د دې د پاره د روژې د ذکر کولونه پس نی د بدکارنی د بچ کیدو ذکر اوکړو اوونی فرمائیل چه دا مسلمان ښځې اوسړې د حراموادو ګناه د کارونونه بچ شی. خپل دا خاص طاقت په جائزځئ کښې خرڅ کوی. لکه چه بل آیت کښې دی داخلق خپل بدن رامنع کوی خوپه دوی باندې په خپلو ښځو او وینځوهیڅ ملامتیانشته.اوددې نه علاوه چه نورڅه غواړی هغه دحدنه تیریدونکې دې.دالله ﷻ د ذکر باره کښې په یوحدیث کښې دی چه کله خاوندخپله ښځه د شپې راپاسوی او دوه رکعته مونځ دواړه اوکړی نوهغوی د الله ﷻ په ذکرکونکوکښې شمیرلې کیږی[8]
حضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ ټولونه د لوئې درجې والا بنده د قیامت په ورځ

---

[1] صحیح بخاری کتاب الادب باب قول الله تعالی ﴿یایهاالذین امنوا اتقوالله وکونوامع الصادقین﴾: ٦٠٩٤، صحیح مسلم:٢٦٠٧
[2] صحیح بخاری کتاب الاذان باب من جلس فی المسجد ینتظر الصلاة:٦٦٠، صحیح مسلم:١٠٣١، ابن حبان:٤٤٨٦
[3] ترمذی کتاب الایمان باب ماجاء فی حرمة الصلاة:٢٦١٦وهوحسن، ابن ماجه:٣٩٧٣، ٢١١٠.
[4] ابن ماجه کتاب الصیام باب فی الصوم زکاة الجسد:١٧٤٥
[5] ٣٣/الاحزاب:٣٥.
[6] الدرالمنثور:٥/٣٨٠.
[7] صحیح بخاری کتاب النکاح باب قول النبی ﷺ ((من استطاع منکم الباءة...)):٥٠٦٥، صحیح مسلم:١٤٠٠، ابوداؤد: ٢٠٤٦، ترمذی:١٠٨١، ابن ماجه:١٨٤٥، احمد:١/٣٧٨، ابن حبان:٤٠٢٦.
[8] ابوداؤد کتاب التطوع باب قیام اللیل:١٣٠٩

د الله ﷻ په نيز خوك دي؟ حضورﷺ اوفرمائيل چه د الله ﷻ ذکر په کثرت سره کونکي. ماونيل يارسول الله ﷺ دالله ﷻ دلارې د مجاهدنه هم زيات؟حضورﷺ اوفرمائيل سره ددې چه هغه په کافرانوباندې توره چلوي اوتردې چه توره ئې ماته شي اوپه وينوکښې رنګ شي نوبياهم د الله ﷻ داپه کثرت سره ذکرکونکي به د هغه نه غوره وي. (۱)هم په مسنداحمدکښې دي چه حضوراکرم ﷺ دمکې په لارروان وو جمدان ته چه اورسيدونوئې فرمائيل دا جمدان دې خان له روان شو اوخان له ئې وړاندې والې اوکړو. خلقوتپوس اوکړو دمفرد(خان له) نه څه مراد دې؟ وئې فرمائيل چه د الله ﷻ ډېر زيات ذکر کونکي. بيا فرماني ياالله په حج اوعمره کښې خپل سرخرونکوباندې رحم اوکړه.خلقو وئيل دوينيتوکټ کولو والا دپاره هم دعااوکړئې.حضورﷺاوفرمائيل ياالله سرخرونکي اوبښه خلقوبيادکټ کونکودپاره درخواست اوکړو نو حضورﷺ اوفرمائيل چه کټ کونکي هم(۲)دحضورﷺ فرمان دې چه د الله ﷻ د عذابونود بچ کولو هيڅ يوعمل د الله ﷻ د ذکر نه زيات لوئ نه دې. يوځل حضورﷺ اوفرمائيل زه تاسوته د ټولو نه بهتردټولو نه پاك اود ټولو نه د اوچتې درجې عمل اوښايم؟چه ستاسوپه حق کښې دالله ﷻ په لار کښې د سرو اوسپينوزرو د لوټ کولو نه هم زيات بهتر وي اود دې نه هم زيات بهتروی چه تاسو صباد خپلو دښمنانو سره مقابله اوکړئې تاسو د هغوی سټونه اووهئې اوهغوی ستاسو سټونه اووهي. خلقو وئيل حضورﷺ خامخائې رااوښائې. وئې فرمائيل دالله تعالى عزوجل ذکر(۳) د مسنداحمد په يوحديث کښې دي يوسړي د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه کوم يومجاهدغوره دې؟ حضورﷺ اوفرمائيل د ټولونه زيات د الله ﷻ ذکر کونکي. هغه بيا دروژه دارباره کښې تپوس اوکړو نو بياورته هم داجواب ملاوشو. بيائې د مونځ زکوة حج صدقه ټولو باره کښې تپوس اوکړو اوحضورﷺ د هريوهم دغه جواب ورکړو. نو حضرت ابوبکرﷺ د حضرت عمرﷺ نه تپوس اوکړو بياخود الله ﷻ ذکر کونکي ډېر زيات وړاندې شو حضوراکرم ﷺاوفرمائيل او. (۴) د الله ﷻ د ذکر د کثرت باره کښې نورهم ډېراحاديث راغلي دي. هم د دې سورت آيت ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ ذِكۡرٗا كَثِيرٗا﴾(۵)په تفسيرکښې به مونږ دا احاديث بيانوو. ان شاء الله ﷻ.بيافرمائي چه دانيك صفتونه په چاکښې وي مونږ د هغوی د پاره مغفرت تيارکړې دې او ډېر لوئ اجر يعني جنت.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا كَانَ | لِمُؤۡمِنٖ | وَلَا مُؤۡمِنَةٍ | إِذَا | قَضَى ٱللَّهُ | |
| او نشته دې حق | يو مومن سړی لره | اونهٔ يوې مومنې ښځې لره | کله چې | فيصله اوکړی الله | |
| او دهيڅ مومن يا مومنې دپاره جائز نه دی | چې کله ورته الله ﷻ اودهغهٔ رسول ديو کار | | | | |
| وَرَسُولُهُۥٓ | أَمۡرًا | أَن يَكُونَ لَهُمُ | ٱلۡخِيَرَةُ | مِنۡ أَمۡرِهِمۡۗ | وَمَن |
| او رسول دهغه | ديو کار | چې وی هغوئ ته | اختيار | دکار خپل نه | او هغه څوك |
| حکم اوکړی | چې بيا دې هم هغوئ ته څه اختيار وی | او څوك | | | |

(۱) احمد:۳/۷۵
(۲) احمد:۳/۴۱۱وهو صحيح بالشواهد.
(۳) احمد:۵/۲۳۹.
(۴) احمد:۳/۴۳۸.
(۵) ۳۳/الاحزاب:۴۱.

| ضَلٰلًا مُّبِيْنًا | فَقَدْ ضَلَّ | وَرَسُوْلَهٗ | يَّعْصِ اللّٰهَ |
| --- | --- | --- | --- |
| په ګمراهئ ښکاره سره | نو ګمراه شو | او د رسول د هغه | چې نافرماني کوي د الله |

چې د الله ﷻ او دهغهٔ د رسول ﷺ نافرماني کوي نو هغه ښکاره ګمراه شو

**قوله تعالی:- وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ**

**د پېغمبر ﷺ د حکم په وړاندې د چاهيڅ اختيار نشته:-** رسول الله ﷺ د زيدبن حارثه ﷺ پيغام يوړو اود حضرت زينب بنت جحش رضي الله عنها کره لاړو. هغې ونيل چه زه هغه سره نکاح نه کوم. حضور ﷺ اوفرمائيل داسې مه وايه اوهغه سره نکاح اوکړه. حضرت زينب رضي الله عنها ونيل چه ښه ده بيالړه موقعه راکړه چه زه لږ سوچ اوکړم. اوس لاداخبرې کيدې چه وحي نازل شوه اودا آيت نازل شو. دې آوريدو سره حضرت زينب رضي الله عنها اوونيل يارسول الله ﷺ تاسو په دې نکاح سره راضي ئې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه او نو حضرت زينب رضي الله عنها جواب ورکړو چه بس بيازما انکارنه دې. زه به دالله تعالی د رسول ﷺ نافرماني نه کوم. ما خپل خان د هغه په نکاح کښې ورکړو. بل روايت کښې دی چه د انکار وجه داوه چه د حضرت زيدد نسب نه د هغې نسب ډيرشرافت والا وو. حضرت زيد ﷺ درسول الله ﷺ آزادکړې شوې غلام وو.

**دا آيت مبارک د چا باره کښې نازل شوې دې:-** حضرت عبدالرحمن بن زيد بن اسلم فرماني چه دا آيت د عقبه بن ابي معيط د لورام کلثوم رضي الله عنها باره کښې نازل شوې دې.دصلح حديبيه نه پس دټولونه رومبنی مهاجره ښځه هم دا وه. هغې رسول الله ﷺ ته اوفرمائيل حضور ﷺ زه خپل خان تاته هبه کوم حضور ﷺ اوفرمائيل ماته قبوله ده. بيائی دحضرت زيدبن حارثه ﷺ سره د هغې نکاح اوکړه. غالباً دانکاح د حضرت زينب رضي الله عنها د نکاح نه پس شوې ده. په دې سره ام کلثوم رضي الله عنها خفه شوه اود هغې رونړه هم وران شو چه زمونږ خوخپله اراده د رسول الله ﷺ سره دنکاح وه نه چه د هغوی ﷺ د غلام سره د نکاح. په دې باندې دا آيت نازل شو بلکه د دې نه هم معامله صفاشوه اواوفرمائيلې شو چه ﴿ اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗۤ اُمَّهٰتُهُمْ ؕ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ اِلَّاۤ اَنْ تَفْعَلُوْۤا اِلٰۤى اَوْلِيٰٓئِكُمْ مَّعْرُوْفًا ؕ كَانَ ذٰلِكَ فِي الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا ﴾([1]) نبی کريم ﷺ د مؤمنانود خانونونه هم زيات وړاندې دې. نوآيت ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗۤ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ؕ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ﴾([2]) خاص دې اود دې نه هم جامع آيت دا دې.

**دجليبيب قصه:-** مسنداحمد کښې دی چه يوانصاری ﷺ ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل ته د خپلې لور نکاح جليبيب ﷺ سره اوکړه. هغه جواب ورکړو ښه خبره ده زه به خپل کور والا سره هم مشوره اوکړم. لاړو مشوره ئې اوکړه نو هغې ونيل دانه شی کيدې. مونږ خود فلانکوفلانکو ددوی نه لويولويو خلقو پيغام واپس کړې دې او اوس جليبيب ﷺ سره نکاح اوکړې. انصاری ﷺ د خپلې بی بی جواب اوريدو سره د حضور ﷺ په خدمت کښې تلل غوښتل چه لورنی د پردې نه اخوادا ټولې خبرې اترې اوريدلې ونی ونيل تاسو درسول الله ﷺ خبره غورزوئی؟ کله چه حضور ﷺ په دې خوشحاله دې نوتاسو له انکار نه دی کول پکار.اوس دواړو ونيل چه دا لورموټيک وائی. مينځ کښې رسول الله ﷺ دې د دې نکاح نه انګارکول د رسول الله ﷺ پيغام او خواهش پريخودل دی دا ټيک نه دی. انصاری ﷺ نيغ د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئې اوکړو يارسول الله ﷺ تاسو په دې خبره باندې خوشحاله ئې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه اوزه په دې باندې رضامنديم. ونی ونيل بياتاسو ته اختياردې چه تاسو نکاح اوکړئی نوبس نکاح اوشوه.يوخل دمدينې مسلمانان د دښمن د مقابلې دپاره اووتل جنګ اوشو په کوم کښې چه حضرت

---

[1] ۳۳/الاحزاب:۶.

[2] ۳۳/الاحزاب:۳۶.

جلیبیب ﷺ شهیدشو. هغه ډیرزیات کافران قتل کړي وو د هغوی مړی د ده سره خواکې پراته وو. د حضرت انس ﷺ بیان دې چه ماپخپله اولیدل چه دهغه کور ډیر موړ وو په ټوله مدینه کښې د هغه نه څوک زیات خرچ والا نه وو. (۱) په یوبل روایت کښې د حضرت ابوبرزه اسلمی ﷺ بیان دې د حضرت جلیبیب ﷺ په طبیعت کښې ټوقې وې په دې وجه ما په خپل کور کښې ونیلې وو چه دې تاسو کره رانه شي. د انصارو عادت وو چه هغوی به د یوې ښځې نکاح نه کوله تردې چه دا معلومه کړی چه حضور ﷺ د هغوی باره کښې څه نه فرمائی بیانی دغه واقعه بیان کړه کومه چه پورته ذکر شوه.
پدې کښې داهم دی چه جلیبیب ﷺ اووه کافران په دې غزوه کښې قتل کړي وو.بیاکافران راجمع شو او هغه ئې شهیدکړو. حضور ﷺ د هغوی په لټون کښې چه کله د هغوی مړی له راغلو نوونی فرمائیل د اووه کسانوژلونه پس شهیدشوې دې. دا زما دې او زه د ده یم. دوه یادرې ځل ئې داسې اوفرمائیل. بیائې قبراوکنستلو او په خپلو لاسونومبارکوئې په قبرکښې ورکوزکړو.درسول الله ﷺ په لاسونو مبارکو د هغوی جنازه اوشوه اوهیڅ کټ وغیره نه وو. داهم ذکر نه دې چه هغوی ته غسل ورکړې شوی وی. د الله رسول ﷺ دادعاکړې وه چه یاالله تعالی په ده باندې د خپل رحمتونوباران راوروره اوده له د ژوند ټول خوندونه ورکړه. په ټولوانصاروکښې د هغې ښځې نه د زیات خرچ والا یوه ښځه هم نه وه. (۲) هغې چه کوم وخت کښې د پردې نه اخواته خپل موربلارته ونیلې ووچه د حضور ﷺ خبره مه ردکوئې نوهغه وخت دا آیت ﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ۗ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُبِينًا ﴾ (۳) نازل شوې وو.
دحضرت ابن عباس ﷺ نه حضرت طاؤس رحمه الله تپوس کوی چه د مازیګرنه پس دوه رکعته کولې شی؟ نو هغوی منع کړو اود دې آیت تلاوت ئې اوکړو. نودا آیت لکه چه د شان نزول په اعتبارسره مخصوص دې خود حکم په اعتبارسره عام دې. د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ په موجودګئ کښې خونه څوک څه مخالفت کولې شي او نه د منلواونه منلوچاته څه اختیار باقی پاتې کیږی. نه د رائې قیاس کولو حق او نه د یوې خبرې حق. لکه چه ارشاد دې ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ (۴) یعنی قسم دې ستادرب خلق به ایماندار نه وی ترکومې چه هغوی به خپل مینځ کښې ټولواختلافاتو کښې تاحاکم اونه منی. بیا ستا په فرمان باندې په زړه کښې څه تنګوالی اونه ساتی بلکه په کولاوزړه سره ئې اومنی. په صحیح حدیث کښې دی د هغه ذات قسم د چا په لاس کښې چه زما ځان دې چه تاسو کښې یوکس مؤمن کیدې نه شی ترکومې چه د هغه خواهش د هغه څیز تابعدار نه شی کومې چه ما راوړې دی(۵)ددې د پاره دلته ئې هم د دې خلاف څه بدی بیان نه کړه چه د الله ﷻ اود هغه د رسول ﷺ نافرمانی کونکې ښکاره په ښکاره ګمراه دې. لکه چه ارشاد دې ﴿ فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَنْ تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ (۶) یعنی کوم خلق چه د رسول الله ﷺ د ارشاداتو خلاف کوی هغوی له ویریدل پکار دی چه داسې نه وی په هغوی باندې څه فتنه راپریوځی او یا هغوی ته څه دردناك عذاب اورسی.

---

(۱) احمد:۳/۱۳۶وسنده صحیح، ابن حبان:۴۰۵۹، مجمع الزوائد:۹/۳۶۸.
(۲) احمد:۴/۴۲۲وسنده صحیح، ابن حبان:۴۰۳۵،صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب من فضائل جلیبیب ﷺ:۲۴۷۲ مختصراً.
(۳) ۳۳/الاحزاب:۳۶.
(۴) ۴/النساء:۶۵.
(۵) شرح السنة:۱۰۴ مشکوة کتاب الایمان باب الاعتصام بالکتاب والسنة:۱۶۷.
(۶) ۲۴/النور:۶۳.

وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ

او یاده کړه کله چي ونیل تا | هغه سړي ته | چي احسان کړی وو الله | په هغه باندي | او احسان کړی وو تا | په هغه باندي

او (یاد ساته) هر کله چي تا (زید بن حارثه ته) په چا چي الله ﷻ احسان کړی وو او تا پري هم احسان کړی دا او ونیل

أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللَّهَ وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا

چي او ساته | خان ته | ښځه ستا | او او ویریږه د الله نه | او پټه ساتله تا | په زړه خپل کښي | هغه خبره

چي خپله ښځه پخپله نکاح کښي اوساته | او د الله ﷻ نه او ویریږه | او تا په خپل زړه کښي

اللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى النَّاسَ وَاللَّهُ أَحَقُّ

چي الله | ښکاره کونکي وو دهغي | او ته ویریدلي | د خلقو نه | حالانکه الله | زیات حقدار دي |

هغه خبره پټه ساتله | کومه چي الله ﷻ ښکاره کوله | او ته د خلقو د اعتراض نه ویریدلي | حالانکه الله ﷻ

أَنْ تَخْشَاهُ ۖ فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِنْهَا وَطَرًا

ددې چي ته او ویریږې دهغه نه | پس هر کله چي | پوره کړو | زید | هغي نه | حاجت (خپل) |

ددې زیات حقدار دي | چي ته دهغهٔ نه او ویریږې | بیا هر کله چي زید د خپلي ښځي نه حاجت پوره کړو

زَوَّجْنَاكَهَا لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ

نو په نکاح درکړه مونږ تاته هغه | د پاره ددې چي | نهٔ وی | په مومنانو باندي | څه تنګي (سختي)

(او طلاق ئي ورکړو) | نو مونږ تاته هغه په نکاح کړه | دې د پاره چي د بیا د پاره مسلمانانو ته دهغه چا د

فِيٓ أَزْوَاجِ أَدْعِيَآئِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا ۚ

په معامله د ښځو | د خلي بللو خامنو خپلو کښي | کله چي | پوره کړي | دهغوئ نه | حاجت خپل |

ښځو په نکاح سره اخستلو کښي هیڅ تنګي پاتي نشي | چي په خویتوب ئي نیولي وی | کله چي ترې هغوی حاجت پوره کړی

وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ۝

او دي | حکم د الله | خامخا کیدونکي |

او د الله ﷻ حکم خامخا پوره کیږي |

**قوله تعالی:- وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ**

**دحضرت زید ؓ واقعه او دهغه فضیلتونه:**- الله ﷻ خبرورکوی چه رسول الله ﷺ خپل آزادکړي شوي غلام حضرت زید بن حارثه ؓ په هرشان سره ښه پوهه کړو چه په هغه باندي د الله ﷻ انعام وو چه د اسلام اود رسول الله ﷺ د تابعدارئي توفیق ئي ورکړو اوحضور ﷺ هم په هغه باندي احسان وو چه هغه ئي د غلامئي نه آزادکړو. د ده ډیر لویٔ شان وو اوحضور ﷺ ډیرزیات خوښ وو تردې چه ده ته به ټولو مسلمانانو حب الرسول ونیل اودهغه خویٔ اسامه ؓ ته هم. حب بن حب (یعني محبوب بن محبوب) به ئي ورته ونیل. د حضرت عائشه صدیقه ؓ ارشاد دې په کوم لښکر کښي چه به حضوراکرم ﷺ دې لیګلونود هغه لښکر سردار به ئي هم دې جوړولو. که دې ژوندي وونود رسول الله ﷺ خلیفه به وو(¹) بزارکښې دی حضرت اسامه ؓ فرمائی زه په جمات کښې ووم ماله حضرت عباس ؓ اوحضرت

¹) احمد: ۲۸۱/٦، السنن الکبری: ۸۱۸۲ وسنده حسن، حاکم: ۲۱۵/۳.

علیؓ راغله ونې فرمائيل لاړشه د حضورﷺ نه زمونږ د پاره اجازت واخله. ماحضورﷺ ته خبروركړو حضورﷺ اوفرمائيل چه معلومه ده هغوى ولې راغلى دى؟ ماوئيل نه. حضورﷺ اوفرمائيل ماته پته ده لاړ شه راوغواړه. دوى راغله ونې فرمائيل يارسول الله ﷺ لږ شان اوفرمائې چه تاسو ته په خپلو اهل بيتو كښې د ټولونه زيات څوك ډير محبوب دې. حضورﷺ اوفرمائيل زمالور فاطمه ؓ. هغوى وئيل چه مونږ د فاطمه بى بى ؓ باره كښې تپوس نه كوو حضورﷺ بياوفرمائيل اسامه بن زيدبن حارثه ؓ په چاچه الله ﷻ انعام كړې اوماهم[1] نبى كريم ﷺ دهغه نكاح دخپلې ترور لورامیمه بنت عبدالمطلب لور زينب بنت جحش ؓ اسديه سره كړې وه. لس ديناره او اووه درهم مهرئې وركړې وو. يوه لوپټه يو څادر اويوقميص پنځوس مده غله اولس مده كهجورې هم وركړې وې. تربوكال اوځه موده د پاسه خودا كور آباد وو خوبياخفګان شروع شو. حضرت زيدؓ حضورﷺ له راغلو شكايت ئې اوكړو نوحضورﷺ هغه پوهه كړوچه كور مه ورانوه د الله ﷻ نه اوويرېږه. ابن ابى حاتم او ابن جرير دلته ډير غير صحيح آثار نقل كړى دى د كوم نقل چه هم مونږ مناسب نه ګنړو اويريږدونى خكه چه په دې كښې يوهم ثابت او صحيح نه دې. په مسنداحمدكښې هم يوروايت د حضرت انس ؓ نه نقل دې خويه دې كښې هم ډير غرابت دې په دې وجه مونږ هغه هم نقل نه كړو.

**د زيد اوزينب جدائى اودرسول كريم ﷺسره نكاح**: صحيح بخارى شريف كښې دى چه داآيت د حضرت زينب بنت جحش ؓ اوحضرت زيد بن حارثهؓ باره كښې نازل شوى دې[2] ابن ابى حاتم كښې دى چه الله ﷻ د اول نه خپل نبى ﷺته خبروركړې ووچه حضرت زينب ؓ به ستا په نكاح كښې راخى هم داخبره وه چه كوم حضورﷺ ظاهره نه كړه اوحضرت زيد ؓ ئې پوهه كړو چه هغه دې خپله بى بى نه جداكوى. حضرت عائشه صديقه ؓ فرمائى كه رسول الله ﷺ د الله ﷻ وحى د كتاب الله نه يوا يت هم پټول غوښتل نودا آيت به ئې پټ كړې وو[3] د ﴿وطرا﴾ معنى حاجت ده. مطلب داچه كله زيدؓ د هغې نه مړ شواوسره د پوهه كولو ئې يوځاى وخت تيرول قايم نه كړې شو بلكه طلاق اوشو نوالله تعالى حضرت زينب د رسول الله ﷺ په نكاح كښې وركړه. په دې وجه د ولى ايجاب اوقبول دمهر اوګواهانو ضرورت پاتې نه شو. مسنداحمدكښې دى چه د حضرت زينب ؓ عدت پوره شو نورسول الله ﷺ حضرت زيدبن حارثه ؓ ته اوفرمائيل ته لاړشه او هغې ته زما د نكاح پيغام اورسوه. حضرت زيدؓ لاړو هغه وخت هغې اوړه اخل. په حضرت زيدؓ باندې دهغې عظمت دومره راخورشوچه په مخامخ ئې ورته خبره هم اونه كړې شوه مخ ئې واړولو كيناستو ذكرئې اوكړو. مور بى بى ونيل چه اودريږه زه د الله ﷻ نه استخاره كوم. داخو اودريده مونځ ئې كولو هلته په رسول الله ﷺ باندې وحى نازله شوه په كوم كښې چه الله ﷻ اوفرمائيل ما ستا نكاح هغې سره اوكړه. هم هغه وخت حضورﷺ بې دځه خبروركولونه هلته راغلو.بيادوليمې په دعوت كښې حضورﷺ په ټولوباندې روټئى غوښه اوخوړله. خلقو خوراك څښاك اوكړولاړل. خويوځوكسان هلته ناست ووخبرې كولې. حضورﷺ بهرراوتلو اوخپلو بيبيانوته ئې سلام كولو اوهغوى به دحضورﷺ نه تپوس كولو چه اوفرمائې چه د بى بى نه خوشحاله ئې؟ ماته يادنه دى چه ماحضورﷺ ته خبروركړوياهغه ته خبر وركړې شو چه خلق دهغه ځاى نه لاړل دې نه پس حضورﷺ دهغه كورطرف ته تشريف يوړو زه هم حضورﷺ سره ووم. ما د حضورﷺ سره د تلواراده اوكړه

---

[1]) ترمذى كتاب المناقب باب مناقب اسامة بن زيد ؓ:۳۸۱۹ وسنده حسن.

[2]) صحيح بخارى كتاب التفسيرسورة الاحزاب باب قوله ﴿وتخفى فى نفسك...﴾ :۴۷۸۷، ترمذى۳۲۱۲، ابن حبان:۴۰۴۵، احمد:۱۴۹/۳.

[3]) الطبرى:۲۷۴/۴صحيح مسلم كتاب الايمان باب معنى قول الله عزوجل ﴿ولقدراه نزلة أخرى﴾ : ۱۷۷وسنده صحيح.

خوهغوی پرده اوکړه اوزما د هغوی په مینځ کښې پرده اوشوه اود پردې اياتونه نازل شو اوصحابه کراموﷺ ته نصيحت اوشو اوفرمانيلې شو چه د نبی اکرم ﷺ کورونوته بې اجازت مه ورځئ. (۱)
مسلم وغيره صحيح بخاری کښې دی چه حضرت زينب ﷞ به ازواج مطهراتو رضی الله عنهن ته به فخرسره ونيل چه ستاسو دتولونکاح ستاسو وليانو او وارثانوکړې دی اوزما نکاح په اووم آسمان باندې الله ﷻ پخپله کړې ده. (۲) د سورت نور په تفسيرکښې مونږ دابيان کړې دې. حضرت زينب ﷞ ونيل زما نکاح د آسمان نه راکوزه شوې ده د دې په مقابله کښې حضرت عائشه ﷞ اوفرمانيل چه زماد برا ءت آياتونه د آسمان نه راکوزشوی دی د کومې چه حضرت زينب ﷞ اقراراوکړو. (۳)

**دزينب رضی الله عنها خصوصيات:** ابن جريرکښې دی زينب ﷞ يوخل حضورﷺ ته اوونيل په ما کښې الله ﷻ درې خصوصيتونه کيخودې دی چه ستاسوپه نوروبيبيانوکښې نه دی. يوخودا چه زما او ستاسو نيکه يودې دويمه دا چه الله ﷻ د آسمان نه زه ستاسو په نکاح کښې درکړم دريم دا چه زمونږ په مينځ کښې سفيرحضرت جبرائيل ﷺ وو. (۴) بيافرمانی چه مونږ د هغې سره ستا نکاح کول جانزکړل دې د پاره چه په مسلمانانوباندې د خپل اخستې شوی هلکانو د ښځو باره کښې کله چه هغوی له طلاق ورکړې شی هيڅ ګناه پاتې نه شی. يعنی که هغوی غواړی نودې سره نکاح کولې شی. حضورﷺ د نبوت نه وړاندې زيد خپل خوئ جوړکړې وو په عام توګه به هغه ته زيد بن محمد ﷺ ونيلې کيدو قرآن پاک د دې نسبت نه هم منع اوکړه اوحکم نی ورکړو چه دې دخپل حقيقی پلار د نسبت طرف ته رابللی.
بيا چه کله زيد ﷺ زينب ﷞ ته طلاق ورکړو نوالله ﷻ دادخپل نبی په نکاح کښې ورکړه اوداخبره نی هم اخواکړه. په کوم آياتونوکښې دحراموښځو ذکراغلې دې هم هلته همدا اوفرمانيلې شو چه ستاسو د خپل اصلی خونی ښځه په تاسو باندې حرامه ده. اود اخستې شوی هلکانو ښځې د دې حکم نه بهردی ځکه چه داسې هلکان په عربوکښې ډير وو. داد الله ﷻ په امر سره مقرر شوې وه چه د دې کيدل حتمی يقينی اوضروری وو اوحضرت زينب ﷞ ته د اول نه داعزت ملاويدل ليکلې شوی وو چه هغه دې په اذواج مطهرات امهات المؤمنين رضی الله عنهن کښې داخله وی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيمَا | مِنْ حَرَجٍ | عَلَى النَّبِيِّ | مَا كَانَ | |
| په هغه كار كښې | څه ګناه (بنديز) | په نبی باندې | نشته | |
| الله تعالی چې د پيغمبر دپاره د کومې خبرې فيصله کړې ده | | | | |
| فِي الَّذِينَ | سُنَّةَ اللهِ | لَهُ ۚ | فَرَضَ اللهُ | |
| په معامله دهغه پيغمبرانو كښې | داطريقه دالله ده | دپاره دهغه | چې مقرر كړې وی الله | |
| په هغې كښې په دوی هيڅ الزام نشته \| د پخوانو (پيغمبرانو) دپاره هم الله ﷻ دغه شان فيصلې كړې | | | | |
| مَّقْدُورًا ۞ | قَدَرًا | أَمْرُ اللهِ | وَكَانَ | مِنْ قَبْلُ ۚ خَلَوْا |
| مقرر كړې شوی | يوه ازلی فيصله | حكم دالله | او دې | دمخكښې نه \| چې تير شوی دی |
| وی \| اودالله ﷻ دهر كار اندازه مقرر شوې ده | | | | |

(۱) صحيح مسلم كتاب النكاح باب الذواج زينب بنت جحش...:۱٤۲۸، السنن الكبرى للنسائی:۱۱۸۰۸، احمد: ۱۹۵/۳
(۲) صحيح بخاری كتاب التوحيد باب وكان عرشه على الماء:۷٤۲۰.
(۳) الطبری:۱۱۸/۱۹.
(۴) الطبری

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِيْنَ | يُبَلِّغُوْنَ | رِسٰلٰتِ اللّٰهِ | وَيَخْشَوْنَهٗ | وَلَا يَخْشَوْنَ |
| دا طريقه ده دپاره دهغه خلقو | چې رسوی | پيغامونه دالله | او يريږی دهغه نه | اونهٔ يريږی هغوی |

دا ټول هغه پيغمبران دی اچې دالله ﷻ پيغامونه ئې خلقو ته رسول | اوله ده نه بهٔ ويريدل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَحَدًا | اِلَّا اللّٰهَ ؕ | وَكَفٰى بِاللّٰهِ | حَسِيْبًا ۝ | مَا كَانَ | مُحَمَّدٌ |
| دهيچا نه | مگر دالله نه | او كافي دي الله | دپاره دحساب اغستلو | نهٔ دي | محمد ﷺ |

اودالله ﷻ نه سوا به دهچا نه نه ويريدل |اودحساب اخستلو له يوازې الله ﷻ كافي دي| محمد ستاسو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَبَآ اَحَدٍ | مِّنْ رِّجَالِكُمْ | وَلٰكِنْ | رَّسُوْلَ اللّٰهِ | وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ ؕ |
| پلار ديوكس | دنارينو ستاسو نه | وليكن | رسول دالله دي | او آخرى دپيغمپرانو دي |

په سړو كښې دهيچا پلار نه دي |هغه خو دالله ﷻ يو پيغمبر دي| اوآخرى نبى دي

| | | |
|---|---|---|
| وَكَانَ اللّٰهُ | بِكُلِّ شَيْءٍ | عَلِيْمًا ۝ |
| او دي الله | په هر څيز باندې | ښه عالم |

اوالله ﷻ ته هر څيز ښه معلوم دي

**قوله تعالى:- مَا كَانَ عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيْمَا فَرَضَ اللّٰهُ لَهٗ ؕ**

**په جائزامورو كښې انبياء عليهم السلام باندې څه پابندي نه وی:-** فرمائی چه كله دخپل اخستې شوی څونی دښځې سره د هغه د طلاق نه پس نكاح كول جائزدی نو بيا په دې كښې په نبی ﷺ باندې څه بدی ده په وړاندينوانبياء كرامو باندې به كوم حكم د الله ﷻ نازليدو په هغې باندې په عمل كولو كښې په هغوی باندې هيڅ بدی نه وه.ددې نه غرض دمنافقانو دقول ردكول دی چه گوره د خپل آزاد كړې شوی غلام اودخپل اخستې شوی خوئ ښځې سره نی نكاح اوكړه. دالله ﷻ مقرركړې شوی كارونه به كيږی. هغه چه څه غواړی كيږی اوچه څه نه غواړی نه كيږی.

**قوله تعالى:- اَلَّذِيْنَ يُبَلِّغُوْنَ رِسٰلٰتِ اللّٰهِ**

**د انبياء كرامو صفتونه او ذمه داری:--** دهغوی تعريف كولې شی څوك چه د الله ﷻ احكام مخلوق ته رسوی اودالله ﷻ دا امانت اداكوی اودهغه نه ويريږی.بغيردالله تعالى نه بل د چانه هم نه ويريږی. د چا په شان او شوكت سره په رعب كښې نه راځی اود الله ﷻ پيغام رسولو كښې هيڅ ويره نه خوری.دالله ﷻ نصرت اوامداد كافی دې.ددې منصب په پوره كولو كښې دټولو پيشوابلكه په يوامركښې د ټولو سردار حضرت محمدرسول الله ﷺ دي. خيال اوكړئی چه په مشرق اومغرب كښې هريوبنيادم ته حضوراكرم ﷺ د الله ﷻ د دين تبليغ اوكړو اوتر كومې چه دالله تعالى دين په ټوله دنياكښې خورنه شو حضور ﷺ د الله ﷻ د دين په خوررولو كښې يوشان مشغول وو. دحضور ﷺ نه وړاندې ټول انبياء كرام دخپل خپل امت طرف ته راغلی وو خوحضور ﷺ د ټولې دنيادپاره د الله ﷻ رسول جوړشوې راغلې دی.په قرآن كښې د الله ﷻ ارشاد دې چه خلقوته اعلان اوكړه چه زه ستاسود ټولوطرف ته د الله ﷻ رسول يم. سلام عليه. بيادحضور ﷺ نه پس دتبليغ منصب امت ته ملاوشو.په دوی كښې د ټولوسرداران صحابه كرام ﷺ دی. كوم څه چه هغوی د حضور ﷺ نه زده كړې ووټول هر څه ئی روستونوخلقوته اوخودل. ټول اقوال افعال او احوال د شپې ورځې د سفراوحضرښكاره اوپټ ئی د دنيا په وړاندې كيخودل الله ﷻ دې په هغوی باندې خپله رضامندی نازله كړی بياد هغوی نه پس د هغوی وارثان شو اودغه شان هر يو روستو راتلونكې دخپل وړاندينی وارث جوړشو اوبه دې سره د الله ﷻ دين خورشو اوقرآن اوحديث د خلقوپه

غوږونو کښې پریوتلو. دهدایت والا ددې په اقتداء کښې منورشو اودخیرد توفیق والا د هغوی په مسلك روان شو دالله تعالى چه کريم ذات دې نه زمونږ دعاده چه هغه دې مونږ هم د دوی نه کړی. آمين.

**قوله تعالى:- مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ**

**د حضور ﷺ اولاد:-** مسنداحمد کښې دی چه په تاسوکښې دې څوك هم خپل خان ذلیل کوی نه خلقو ونيل حضور ﷺ داڅنګه؟ونی فرمائیل چه د شرع خلاف کاراووينى اود خلقو د ويرې خاموش پاتې شي د قيامت په روخ به د ده نه تپوس پوښتنه کيږى چه ته ولې چپ پاتې شوې؟ دې به وانى د خلقو د ويرې الله ﷻ به فرمائی د ټولونه زياته ويره ساتلو قابل خوزما ذات وو(۱) بيا الله ﷻ منع کول کوی چه څاته هم د رسول الله ﷺ ځوئ اونه وائې خلقو چه به.کوم زيدبن محمدوئيلواودهغې بيان پورته تيرشوې دې نو الله تعالى فرمائی چه نبى کريم ﷺ د زيدپلار نه دې. هم داسې اوشوچه دحضور ﷺ يونارينه اولاد هم بلوغت ته اونه رسيدو. بيا د حضرت ماريه قبطيه رضي الله عنها نه يوماشوم پيداشو دهغه نوم ابراهيم وو خودې هم دېنيوڅکلوپه زمانه کښې وفات شو.دحضور ﷺ لونړه د حضرت خديجه بى بى رضي الله عنها نه څلور وې زينب رقيه ام کلثوم اوفاطمه رضی الله عنهن. په دې کښې درې خودحضور ﷺ په ژوند کښې وفات شوې صرف دحضرت فاطمه رضي الله عنها وفات دحضور ﷺ نه شپږ مياشتې پس شوې دې.

**حضور اقدس ﷺ أخرى نبى دې:-** بيافرمائى چه حضور ﷺ د الله ﷻ رسول اوخاتم النبيين دې. کوم ځائ چه الله ﷻ ته ښه پته ده چه کوم ځائ کښې خپل رسول غواړى. دا آيت نص دې په دې امر باندې چه د حضور ﷺ نه پس بل نبى نشته اوچه کله نبى نشته نو رسول به څه وى؟ هيڅ يونبى يارسول به روستونه راځى. رسالت خود نبوت نه هم خاص څيز دې هريورسول نبى دې خوهرنبى رسول نه دې.

**قوله تعالى:- وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ**

**د ختم نبوت متعلق احاديث.-** په متواتر احاديثوسره هم رسول الله ﷺ خاتم النبيين ثابت دې. د ډيرو زياتو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه دا احاديث روايت شوى دى. مسنداحمدکښې رسول الله ﷺ فرمائى زما مثال په انبياء کرامو کښې داسې دې لکه چه يوسړى ډير ښکلې او پوره مکان جوړکړې وى خو په هغې کښې نى د يوې خښتې ځائ پريخودې وى او په هغې کښې نى هيڅ نه وى ايخودې. خلق د دې د څلورو واړو طرفونه خيال ساتى اود دې په جوړيدو باندې خوشحاله وى ولې وائى چه څومره به ښه وه چه دا يوه خښته نى هم کيخودې وې. نو زه په انبياء کرامو کښې هم د دغه خښتې ځاى يم(۲)امام ترمذى رحمه الله هم داحديث راوړې دې اودې ته نى حسن صحيح وئيلې دې.مسنداحمدکښې رسول الله ﷺ فرمائى رسالت اونبوت ختم شو زما نه پس نه څوك نبى شته نه رسول. په صحابه کرامو رضي الله عنهم باندې داخبره ګرانه پريوتله نو حضور ﷺ اوفرمائيل دازيرى ورکونکى صحابه کرامو رضي الله عنهم تپوس کوى دا زيرى ورکونکى څوك دى؟ ونى فرمائيل د مسلمانانو خوبونه چه د نبوت د اجزاؤ نه يوجز دې. داحديث هم په ترمذى شريف کښې دې امام ترمذى رحمه الله دې ته صحيح غريب وائى. (۳)

دمحل د مثال والا حديث په طيالسى کښې هم دې د دې په آخره کښې دادى چه زه د دغه خښتې ځائ يم.په ما سره انبياءکرام ختم کړې شو دا بخارى مسلم اوترمذى(۴) هم راوړلې دې. د مسند د دې حديث په سند کښې دى چه زه راغلم اود دغه خالى خښتې ځائ مې ډك کړو.(۵) مسندکښې دى چه مانه پس

---

(۱) ابن ماجه كتاب الفتن باب الامربالمعروف والنهى عن المنكر:۴۰۰۸ احمد:۳/۳۰.
(۲) ترمذى كتاب المناقب باب ((سلواالله لى الوسلة....)):۳۶۱۳وهوحسن، احمد:۵/۱۳۶-۱۳۷.
(۳) ترمذى كتاب الرويا باب ذهبت النبوة وبقيت المبشرات:۲۲۷۲وسنده صحيح، احمد:۳/۲۶۷.
(۴) صحيح بخارى كتاب المناقب باب خاتم النبين ﷺ:۳۵۳۴، صحيح مسلم:۲۲۸۷، مسندالطيالسى:۱۷۸۵.
(۵) صحيح مسلم كتاب الفضائل باب ذكر كونه ﷺ خاتم النبين:۲۲۸۶، احمد:۳/۹.

نبي نشته خود زيري والا. تپوس اوكړې شو يارسول الله ﷺ هغه څوك دى؟ ونې فرمانيل نيك خوب. (۱) عبدالرزاق وغيره كښې د محل والا په حديث كښې دى چه خلق دې ته ګورى نود محل والا ته وانى چه تاد دې خښتې ځائ ولې پريخې دې نوزه هم هغه خښته يم.(۲) صحيح مسلم شريف كښې دى رسول الله ﷺ فرمانى ماته په ټولو انبياؤكرامو باندې شپږ فضيلتونه راكړې شوى دى. ماته جامع كلمات راكړې شوى دى. صرف په رعب باندې زما امدادكړې شوې دې. زما د پاره دغنيمتونومال حلال كړې شوې دې. زما د پاره ټوله زمكه جمات اواودس جوړكړې شوې دې. زه د ټول مخلوق طرف ته نبى جوړكړې راليګلې شوې يم. اوزما سره انبياء كرام ختم كړې شوى دى.(۳) داحديث په ترمذى شريف كښې هم دې او امام ترمذى رحمه الله دې ته حسن صحيح وانى. په صحيح مسلم وغيره كښې د محل والا حديث په مثال والا روايت كښې داالفاظ هم راغلى دى چه زه راغلم اوماد دې خښتې ځائ پوره كړو(۴)مسند احمد كښې دى چه زه د الله ﷻ په نيز دانبياؤكرامو ختمونكې ووم د هغه وخت نه چه لا آدم عليه السلام په پوره توګه پيدا كړې شوې هم نه وو. (۵)

**دنبى كريم ﷺ يوځونومونه:-** په يوبل حديث كښې دى چه زمايوځونومونه دى زه محمديم، زه احمديم، او زه ماحى يم، الله ﷻ به زماپه وجه كفر ختم كړى اوزه حاشر يم د ټولوخلقو حشر زما د قدمونولاندې دې.اوزه عاقب يم د چانه پس چه يونبى هم نشته.(۶)حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه فرمانى يوه ورځ حضوراكرم ﷺ مونږ له راغلو لكه چه هغوى رخصت كول كوى اودرې ځل نې دا اوفرمانيل زه نبى امى يم زما نه پس بل څوك نبى نشته. ماته فاتح كلمات راكړې شوى دى اوډير جامع او په پوره توګه زه پوهيږم چه د دوزخ داروغه ګان څومره دى.اودعرش اوچتونكى څومره دى.زما خپل امت سره پيژندګلو كړې شوې ده. تركومې چه زه په تاسو كښې يم زما اورنى اومنئى. كله چه زه رخصت شم نود الله ﷻ كتاب اونيسئى اود دې حلال حلال اوحرام نې حرام اوګنړئى. (۷)

**دحضور ﷺ نه پس چه څوك دنبوت دعوى اوكړى هغه دروغژن دې:-** په دې باره كښې نورهم ډير احاديث دى.د الله ﷻ په دې وسيع رحمت باندې دهغه شكر كول پكاردى چه هغه په خپل رحم اوكرم سره دومره لوئ رسول راوليګلو اوهغه نې خاتم المرسلين اوخاتم النبيين جوړكړو اويوشان آسان رښتونې اوسهل دين دحضور ﷺ په لاسونومباركو كمال ته اورسيدو.رب العالمين په خپل كتاب كښې اورحمة للعالمين په خپلو متواترو احاديثوكښې داخبروركړې دې چه د هغوى نه پس هيڅ يونبى نشته. نوچه كوم سړې هم د حضور ﷺ نه پس د نبوت يارسالت دعوى كوى هغه دروغژن مفترى دجال ګمراه اوګمراه كونكې دې سره د دې كه جادوګرى اوښائى لولوئ لوئ كمالونه اوكړى او عقل حيرانونكې څيز پيش كړى او قسم قسم نوې نوې څيزونه اوښائى خوعقل مندپوهيږى چه دا ټول فريب دهوكه اومكر دې. د يمن د نبوت دعوى كونكې عنسى اود يمامه د نبوت مدعى مسيلمه كذاب ته اوګورئى چه څنګه هغوى وو هم هغه شان نې اوګنړل پوهه شو اود هغوى اصليت په ټولو باندې ښكاره شو. تردې چه دټولونه پس په آخر

---

۱) احمد:۵/۴۵۴وسنده صحيح، مجمع الزوائد:۷/۱۷۳.
۲) صحيح بخارى كتاب المناقب باب خاتم النبيين ﷺ:۳۵۳۵، صحيح مسلم:۲۲۸۶، احمد:۲/۳۱۲، ابن حبان.۶۴۰۵.
۳) صحيح مسلم كتاب المساجد باب المساجد ومواضع الصلاة:۵۲۳، ترمذى:۱۵۵۳، ابن ماجه:۵۶۷ مختصرا.
۴) صحيح مسلم :۲۲۸۷وترقيم دارالسلام:۵۹۶۳.
۵) احمد:۴/۱۲۷وسنده حسن التاريخ الكبير:۶/۶۸،ابن حبان:۶۴۰۴، السنة لابن ابى عاصم:۴۰۸،مجمع الزوائد:۸/۲۲۳.
۶) صحيح بخارى كتاب المناقب باب ماجاء فى اسماء رسول الله ﷺ:۳۵۳۲، صحيح مسلم:۲۳۵۴، مسندالطيالسى:۹۲۴، احمد:۴/۸۰، مصنف عبدالرزاق:۹۷۵۷، ترمذى:۲۸۴، ابن حبان:۶۳۱۳، مسندحميدى:۵۵۵.
۷) احمد:۲/۲۱۲

مسیح دجال راځي. دهغه په علامتونوکښې یوعلامت داهم دې چه هریوعالم اوهریومؤمن به د هغه دروغوباندې پوهیږي.

**داصلي او جعلي نبي په مینځ کښې فرق:-** نوداهم دالله ﷻ یونعمت دې چه داسې دروغژنو دعویدارونه دا هډونصیب کیږي نه چه هغوی د نیکئي حکم اوکړي یا د بدئي نه منع کول اوکړي. اوپه کومو احکامو کښې چه د هغوی خپل مقصدوی په هغې باندې ډیرزیات زور ورکوي. د هغوی اقوال اوافعال د خان نه او د فسق اوفجوروالاوي.لکه چه ارشاد باری تعالی دې ﴿هَلْ اُنَبِّئُكُمْ عَلٰى مَنْ تَنَزَّلُ الشَّيٰطِيْنُ ؕ تَنَزَّلُ عَلٰى كُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيْمٍ ۙ﴾([1])یعني آیا زه تاسو ته اوښایم چه شیطانان چاله راځي؟ هریو بهتان تړونکي ګناهګار له، د رښتونو انبیاء کرامو حال د دې بالکل خلاف وي. هغوی ډیر زیات دنیکئي والا ډیر رښتوني د هدایت والا استقامت والا د قول اوفعل ښکلې د نیکو حکم ورکونکي د بدو نه منع کونکي وي. اودې سره د الله ﷻ دطرف نه د هغوی تائیدکیږي په معجزو او د عادت نه خلاف څیزونوسره دهغوی صداقت نور زیات ښکاره کیږي. اودومره واضح ښکاره اوصفا دلیلونه د هغوی په نبوت باندې وي چه قلب سلیم د هغې په منلوباندې مجبورکیږي.الله ﷻ دې په خپلو ټولورښتیاو انبیاء کرامو د قیامته پورې خپل درود اوسلام نازلوي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | اذْكُرُوا | | | |
| اے هغه کسانو | چې ایمان موراوړی دی | یادوئ | | | |
| ............. ائي مومنانو تاسو الله ﷻ لره | | | | | |
| اللّٰهَ | ذِكْرًا كَثِيْرًا ۙ | وَّسَبِّحُوْهُ | بُكْرَةً | وَّاَصِيْلًا ۝ | هُوَ الَّذِيْ |
| الله | په یادولو ډیرو سره | او پاکي بیانوئ دهغه | سحر | او مابښام | هغه هغه ذات دي |
| ډیر ډیر یادوئ او سحر مابښام دهغهٔ پاکي بیانوئ | الله ﷻ داسې ذات دي | چې دي په تاسو رحمتونه | | | |
| يُصَلِّيْ | عَلَيْكُمْ | وَمَلٰٓئِكَتُهٗ | لِيُخْرِجَكُمْ | مِّنَ الظُّلُمٰتِ | |
| چې رحمت وانې | په تاسو باندې | او فرښتې دهغه | دپاره ددې چې راوباسي تاسو | دتیرونه | |
| راوروي | اودهغه فرښتې ستاسو دپاره دعاګانې کوي | چې د (کفر) د تورو تیارو نه مو(اسلام) | | | |
| اِلَى النُّوْرِ ؕ | وَكَانَ | بِالْمُؤْمِنِيْنَ | رَحِيْمًا ۝ | تَحِيَّتُهُمْ | يَوْمَ |
| رڼا ته | او دي | په مومنانو باندې | ډیر مهربانه | اسقبال دهغوئ به | په هغه ورځ |
| رڼا ته راوباسي | او دي په مومنانو ډیر مهربان دي | الله ﷻ سره د ملاقات په ورځ | | | |
| يَلْقَوْنَهٗ | سَلٰمٌ ۚ | وَاَعَدَّ | لَهُمْ | اَجْرًا كَرِيْمًا ۝ | |
| چې ملاویږي دهغه سره | په سلام سره وي | او تیار کړي دي الله | دپاره دهغوئ | اجر عزتمند | |
| به ددوئ دعا دا وي | چې السلام علیکم | او الله ﷻ د دوی دپاره ډیره ښه بدله تیاره کړي ده | | | |

**قوله تعالی:- يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوا اللّٰهَ**

**دَ الله ﷻ دَ ذکر فضائل اومسائل:-** د ډیروزیاتو انعام کونکو د پاره د الله ﷻ حکم کولې شی چه مونږ له د هغه ذکر په کثرت سره کول پکاردی اوپه دې کښې هم مونږ ته د لویو نعمتونواود ډیر لوئ اجراوثواب

[1] ٢٦/الشعراء: ٢٢١-٢٢٢.

وعده راکولې شي. يوځل رسول الله ﷺ اوفرمائيل ايا زه ستاسو بهتر عمل اوډيرزيات صفاکار اود ټولو نه د لوني درجې نيکي اوسره اوسپين زرد الله ﷻ په لارکښې د خرچ کولو نه زيات بهتر اود جهاد نه زيات غوره کار اونه ښايم؟ خلقو تپوس اوکړو حضور ﷺ هغه څه څيز دې؟ ونی فرمائيل د الله ﷻ عزوجل ذکر(١)داحديث اول﴿ وَالذّٰكِرٰتِ ۙ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴾(٢)په تفسيرکښې تيرشوې دې. حضرت ابوهريره ﷺ فرمائی ماد رسول الله ﷺ نه دادعاواوريده کومه چه زه يووخت هم نه پريږدم.((اللهم اجعلنی اعظم شکرك واتبع نصيحتك واکثرذکرك واحفظ وصيتك)) يعنی اې الله ته ماخپل ډير زيات شکر کونکې فرمانبردار په کثرت سره ذکرکونکې اوستاد احکامو حفاظت کونکې جوړکړې(٣)دوه اعرابيان رسول الله ﷺ له راغله. يوتپوس اوکړودټولونه ښه سړې څوك دې؟حضور ﷺ اوفرمائيل چه څوك ډير عمر ته اورسی اونيك عمل اوکړی. بل تپوس اوکړواحکام اسلام خو ډير زيات دی ماته چرته د يو وړوکی حکم راکړئ چه هم هغې سره اونخلم. حضور ﷺ اوفرمائيل د الله ﷻ په ذکر باندې هروخت خپله ژبه لمده ساته(٤)فرمائی چه هروخت دالله ﷻ په ذکرکښې مشغول اوسه تردې چه خلق تاته ليونې اووائی. (٥) فرمائی چه د الله ﷻ ذکر په کثرت سره کوه تردې چه خلق منافق يا رياکار اووائی (٦)

فرمائی کوم خلق چه په يومجلس کښې کينی اوهلته د الله ﷻ ذکر نه وی هغه مجلس به دقيامت په ورځ په هغوی باندې دارمان اوافسوس ذريعه جوړيږی(٧)حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی د هر يو فرض کاريوحددې اوهغه بياد عذر په حالت کښې معاف هم دې خود الله ﷻ د ذکر هيڅ حدنشته نه يو وخت روستوکولې شی اودا ده که څوك ليونې وی نو هغه بله خبره ده. په ولاړه ناسته د شپې ورځې او چه لمده سفر حضر مالداری اوفقيری صحت او بيماری پټ اوښکاره غرض په هرحالت کښې د الله ﷻ ذکرکول پکاردی. سحر ماښام د الله ﷻ تسبيح بيانول پکاردی. تاسو چه کله هم دا کونی نوالله تعالی به په تاسو رحمتونه نازلوی اوفرښتې به هروخت تاسو ته دعاګانې کوی(٨)په دې باره کښې نورهم ډير احاديث دی. اوپه دې آيت کښې هم په کثرت سره د الله ﷻ د ذکرهدايت کيږی. بزرګانو دالله تعالی د ذکراودوظائفو ډيرمستقل کتابونه ليکلی دی لکه امام نسائی امام معمری رحمهم الله وغيره.

په دې ټولوکښې د ټولونه بهترين کتاب په دې موضوع دامام نووی رحمه الله دې. سحرماښام د هغه تسبيح کونی.لکه چه فرمائی ﴿ فَسُبْحٰنَ اللّٰهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ ﴾(٩)دالله ﷻ دپاره پاکی ده کله چه تاسو ماښام کونی يا سحر کونی هم د هغه دپاره حمددې په آسمانونوکښې اوپه زمکوکښې اوپس د زوال نه اود ماسپښين په وخت کښې. بيا د دې فضيلت بيانول اود دې طرف ته رغبت ورکولود پاره فرمائی﴿ كَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْكُمْ رَسُوْلًا مِّنْكُمْ يَتْلُوْا عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا وَيُزَكِّيْكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴾ (١٠) څنګه چه مونږ په تاسوکښې خپل رسول اوليګلو چه په تاسو باندې زمونږ آياتونه تلاوت کوی اوتاسو پاك کوی

(١) ترمذی کتاب الدعوات باب نمبر۲ حديث:۳۳۷۷وسنده حسن، ابن ماجه: ۳۷۹۰،احمد:٤٤٦/٦، حاکم:٤٩٦/١.
(٢) ۳۳/الاحزاب:۳۵.
(٣) ترمذی کتاب الدعوات باب دعاء ((اللهم اعظم شکرك....)):٣٦٠٤.
(٤) ترمذی کتاب الدعوات باب ماجاء فی فضل الذکر:٣٣٧٥ وسنده حسن،ابن ماجه: ۳۷۹۳، احمد:١٩٠/٤، حاکم:٤٩٥/١.
(٥) احمد:٦٨/٣ حاکم:٤٩٩/١، ابن حبان:٨١٧، مسندابی يعلی: ١٣٧٦، شعب الايمان:٥٢٦.
(٦) طبرانی:١٢٧٨٦ حلية الاولياء:٨٠/٣.
(٧) احمد:٢٢٤/٢وهوحديث حسن، مجمع الزوائد:٨٠/١٠..
(٨) الطبری: ٢٨٠/٢٠.
(٩) ۳۰/الزمر:۱۷. الخ
(١٠) ٢/البقرة:١٥١.الخ

او تاسو ته کتاب اوحکمت ښائی اوهغه درته ښائی کوم چه تاسو نه پیژندلو. نوتاسو زما ذکرکوئی زه به تاسو یادوم اوتاسوزما شکر کوئی زماناشکری مه کوئی. په حدیث قدسی کښې الله ﷻ فرمائی څوک چه ماپه خپل زړه کښې یادوی زه هم هغه په خپل زړه کښې یادوم اوڅوک چه ما په یوه ډله کښې یادوی زه هم هغه په ډله کښې یادوم چه دهغه د ډلې نه به بهتروی. (۱)

**قوله تعالی:- هُوَالَّذِیْ یُصَلِّیْ عَلَیْکُمْ**

**د صلوة معانی:-** صلوة چه کله د الله ﷻ طرف ته مضاف وی نومطلب دا وی چه الله ﷻ د ده نیکی د فرښتو مخامخ بیانوی(۲)یوبل قول کښې دی دې نه مراد رحمت دې اود دواړو اقوالوانجام هم یو دې دفرښتوصلوة دهغوی دعااواستغفاردې لکه چه بل آیت کښې دی﴿اَلَّذِیْنَ یَحْمِلُوْنَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهٗ یُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَیُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَیَسْتَغْفِرُوْنَ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا ۚ رَبَّنَا وَسِعْتَ کُلَّ شَیْءٍ رَّحْمَةً وَّعِلْمًا فَاغْفِرْ لِلَّذِیْنَ تَابُوْا وَاتَّبَعُوْا سَبِیْلَکَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِیْمِ﴾ (۳) دعرش اوچتونکې اودې سره خواوشاد خپل رب حمداوثنابیانوی او په هغه باندې ایمان راوړی او د مؤمنانوبندیګانود پاره استغفار کوی چه اې زمونږه ربه تاسو هریوڅیز په رحمت اوعلم سره راګیر کړې دې.اې الله ته هغه اوبښه کوم چه توبه کوی اوستاپه لار روان دی هغوی له ددوزخ د اورنه هم خلاصې ورکړه.هغوی هغه جنتونوته بوځه دکوم چه تاهغوی سره وعده کړې اودوی هم هغوی له اوروسه چه د دوی په پلارانو نیکونو ښځو اولاد کښې نیکان وی دوی د بدو نه بچ کړه. الخ. هغه خپل رحمت په تاسو نازلولوسره د فرښتودعاګانې ستاسو په حق کښې قبلوی تاسو د جهالت اوګمراهئی د تیارونه راوباسی اود هدایت اود یقین د نور طرف ته مو اوړی. هغه په دنیا اوآخرت کښې په مؤمنانو باندې رحیم اوکریم دې په دنیاکښې دحق طرف ته د هغوی لارخودنه کوی اورزق ورکوی اوپه آخرت کښې د ویرې خوف نه بچ کوی. فرښتې به راځی اودوی ته به زیری ورکوی چه تاسو د دوزخ نه آزاد ئی او جنتیان ئی. څکه چه د فرښتوزړونه د مؤمنانو د مینې اومحبت نه ډك دی.

**دالله ﷻ مینه او د مور مینه:-** حضورﷺ یوځل خپلو صحابه کرامو﷢ سره په یوه لار روان وو په لارکښې یو وړوکې ماشوم وو. د هغه مور چه کله یوه ډله خپل طرف ته راتلونکې اولیده نو چغې کړې چه زما بچې زما بچې او په منډه راغله ماشوم ئی په غیږ کښې اوچت کړو او یوطرف ته شوه. د مور دې مینې ته چه ئی اوکتل نو صحابه کرامو﷢ عرض اوکړو یارسول الله ﷺ خیال اوکړئی دا به خپل ماشوم په اور کښې واچوی؟ حضورﷺ دهغوی په مطلب باندې پوهه شود ونی فرمائیل په الله ﷻ قسم هغه به هم خپل دوستان په اور کښې نه اچوی؟ (۴)

په صحیح بخاری شریف کښې دی حضوراکرمﷺ یوه قیدی ښځه اولیدله چه هغې خپل ماشوم کتوسره راوچت کړو.اوخپلې سینې سره ئی اولګولو او پئې ئی پرې اوڅکول حضورﷺ اوفرمائیل وایه کنه که د دې په اختیارکښې وی نودا په خپل دا بچې په خپله خوشحالئی سره په اورکښې اوغورزوی؟ صحابه کرامو﷢ عرض اوکړو هیڅ چرې هم نه. حضوراکرم ﷺ اوفرمائیل په الله ﷻ قسم الله ﷻ به خپلو بندیګانو باندې د دې نه ډیر مهربان دې. (۵) د الله ﷻ د طرف نه به د دوی تحفه کله چه ملاوشی د هغه سلام به وی. لکه چه ارشاد دې ﴿ سَلٰمٌ ۚ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِیْمٍ ﴾(۶) قتاده ﷬ فرمائی چه په خپل منځ

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی ﴿ویحذرکم الله نفسه﴾: ۷٤۰۶، صحیح مسلم: ۲۶۷۵، احمد: ۲/۲۵۱، ابن حبان: ۳۲۸.

(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله ﴿ان الله وملائکه یصلون علی النبی﴾: تعلیقا قبل حدیث: ٤۷۹۷.

(۳) ٤۰/المؤمن: ۷.

(٤) احمد: ۳/۱۰٤ ح ۱۲۰۱۸ مسند ابی یعلی: ۳۷٤۷، مجمع الزوائد: ۱۰/۲۱۲. (مسنداحمد).

(۵) صحیح بخاری کتاب الادب باب رحمة الولدوتقبیله ومانقه: ۵۹۹۹، صحیح مسلم: ۲۷۵٤، الاسماء والصفات: ۱۰۳۹.

(۶) ۳۶/یس: ۵۸.

کښي به يوبل ته سلام کوي.(¹)ددې تائيد هم ددې آيت ﴿ دَعْوٰىهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ۚ وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴾(²) نه کيږي.الله ﷻ د هغوی د پاره لوئ اجر يعنی جنت سره د نعمتونوتيار ساتلي دي. په کوم کښي چه به هرينعمت خوراك څښاك اغوستل اچول ښځي خوندونه نظارې وغيره داسې دی چه نن خودچا په خوب اوخيال کښي هم نه شي راتلې نو په کتو او اوريدو کښي به څه راشي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ | اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ | شَاهِدًا | وَّمُبَشِّرًا | وَّنَذِيْرًا ۙ |
| اے نبی | بيشکه ليږلي ئې مونږ ته | ګواهي کونکې | زيرې ورکونکې | او يرونکې |

انې پيغمبره ! مونږ ته يو ګواهي کونکې (نيکانو ته)زيرې ورکونکې د (بدانو) ويرونکې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّدَاعِيًا | اِلَى اللّٰهِ | بِاِذْنِهٖ | وَسِرَاجًا | مُّنِيْرًا | وَبَشِّرِ |
| او دعوت ورکونکې | الله ته | په حکم دهغه سره | او ډيوه | روښانه کونکې | او زيرې ورکړه |

اوالله ﷻ طرف ته دهغه په حکم رابلونکې اويوه روښانه ډيوه (په دې صفاتو موصوف) ليږلي ئې| اوته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْمُؤْمِنِيْنَ | بِاَنَّ | لَهُمْ | مِّنَ اللّٰهِ | فَضْلًا كَبِيْرًا | وَلَا تُطِعِ |
| مومنانو ته | چې بيشکه | دپاره دهغوئ | دطرفه دالله نه | فضل لوئ دې | او حکم مه منه |

مومنانو ته زيرې ورکړه | چې په هغوئ باندې دالله ﷻ لوئې فضل کيدونکې دې | اود کافرانو او

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْكٰفِرِيْنَ | وَالْمُنٰفِقِيْنَ | وَدَعْ | اَذٰىهُمْ | وَتَوَكَّلْ |
| دکافرانو | او منافقانو | او پريږده (پر وامه کوه) | دتکليفونو دهغوئ | او بروسه اوکړه |

منافقانو تابعداری مه کوه| او د دوئ د تکليفونو دررسولو پرواه مه کوه (بلکه په هغې صبر کوه) او

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلَى اللّٰهِ ؕ | وَكَفٰى | بِاللّٰهِ | وَكِيْلًا |
| په الله باندې| | او کافي دې | الله | چې سرې معاملات ورحواله کړی |

په الله ﷻ بهروسه کوه| او الله ﷻ درله کافي کارساز دې

**قوله تعالىٰ:- يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ۙ**

**د حضوراکرم ﷺ اوچت صفتونه:**-عطاء بن يسار رحمه الله فرمائی ماعبدالله بن عمروبن عاص رضی الله عنه ته اوونيل د حضوراکرم ﷺ صفتونه په تورات کښي څه دی؟ وئی فرمائيل چه کوم صفتونه ستاسو په قرآن کښي دی هم د دې نه بعضي صفتونه ستاسو په تورات کښي هم دی.

**د نبی کريم ﷺ صفت په توراة کښي:**-په تورات کښي دی اې نبی مونږ ته ګواه اوخوشحالی اورونکې يرونکې امتونه بچ کونکې جوړکړې ته زما بنده اورسول ئې. ماستانوم متوکل کيخودې دې ته خرابې خبرې کونکې اوفحش خبرې کونکې نه ئې اونه په بازارونوکښي شورکونکې.هغه د بدئی په بدله کښي بدی نه کوی بلکه معافي‌کوی. دې به الله ﷻ نه قبض کوی ترکومې چه د خلقو کوږ کړې شوې دين د هغه په ذات سره بالکل نيغ نه کړی اوهغوی د لااله الاالله قائل نه شي په کوم سره چه ړندې سترګې بينا شي او کاڼه غوږونه اوريدونکي جوړشي اود پردو والا زړونونه زنګ لاړشي.(³)

¹) الطبری:۲۰/۲۸۰.
²) ۱۰/يونس:۱۰.
³) صحيح بخاری کتاب البيوع باب کراهية السخب فی السوق: ۲۱۲۵، احمد:۲/۱۷۴.

**د نبی کریم ﷺ صفت د بنی اسرائیلو د یو نبی په ژبه:**-ابن ابی حاتم کښې دی حضرت وهب بن منبه رحمه الله فرمانی دبنی اسرائیلو یونبی حضرت شعیا علیه السلام باندې الله ﷻ وحی نازله کړه چه خپل قوم بنی اسرائیل کښې اودریږه زه به ستاپه ژبه باندې خپلې خبرې اوکړم. زه په امیانوکښې یوخپل امی نبی لیګونکې یم نه بداخلاق دې نه بدخویه نه بازارونوکښې شورکونکې دې دومره د سکون والا دې که چراغ سره خواکې هم تیرشی نوهغه به مړ نه شی. اوکه پانړو باندې تیرشی نوهم دپښې چاپ به ئې معلوم نه شی. زه به هغه زیرې ورکونکې ویرونکې جوړوم لیګم به ئې چه حق خبرې به کوی. زه به دهغه په وجه ړندې سترګې بیناکړم اوکانړو غوږونوباندې به واوروم اوزنګ شوی زړونه به صفاکړم.دهرې نیکئی طرف ته به دهغه لارخودنه کوم هریونیك خصلت به په هغه کښې موجودکړم.دزړه تسلی به دهغه لباس وی نیکی به دهغه طریقه وی.تقوی به دهغه ضمیروی.حکمت به دهغه خبرې وی.صدق اووفابه دهغه عادت وی.عفواومعاف کول به دهغه اخلاق وی.حق به دهغه شریعت وی.عدل به دهغه سیرت وی. هدایت به د هغه امام وی.اسلام به د هغه دین وی.احمدبه د هغه نوم وی.ګمراهانوته به د هغه په وجه زه هدایت ورکوم.جاهلان به دهغه په ذریعه باندې عالمان جوړوم. د تنزل والا به ترقئی ته رسوم. ناپیژند ګلو به مشهور او معروف جوړکړم. قلت به د هغه په وجه په کثرت سره او فقیری په مالدارئی سره جدا والې په مینې سره اواختلاف په اتفاق سره بدل کړم.مختلف اومتضاد زړونه به متفق او متحدکړم بیل بیل خواهشونه به رایوځائ کړم.دنیا به د هغه په وجه د هلاکت نه بچ کړم. د ټولوامتونونه به دهغه امت اوچت اوغوره کړم.هغوی به د خلقو دفائدې د پاره په دنیاکښې راپیداکیږی. هر یوته به د نیکئی حکم ورکوی اود بدئی نه به ئې منع کوی. هغوی به موحد وی اوهغوی به مؤمنان وی د اخلاص والا به وی. په رسولانو باندې چه کوم څه نازل شوی دی هغه ټول به رښتیامنونکی وی.هغوی به په خپلو جماتونو کښې په خپلو بستروباندې په ګرځیدو راګرځیدو ناسته ولاړه زماتسبیح حمداوثنا بزرګی اولوئی بیانوی.په ولاړه اوناسته به مونځونه اداکوی.دالله ﷻ دښمنانوسره به په صفونوتړلوکښې حملوسره جهادکوی. په هغوی کښې به په زرګونوزما د رضاد پاره خپل کور بال بچ پریږدی اوځی به. مخ لاس به په اودس کښې وینځې. تهبند به د نیمې پنډئی پورې تړی زما په لارکښې به قربانئی کوی زما کتاب به دهغوی په سینوکښې وی. د شپې به عبادت کونکی اود ورځ به مجاهد وی. زه به د هغه نبی په اهل بیت او اولادکښې وړاندیوالې کونکی صدیق شهیداو صالح خلق پیداکوم. د هغه امت به د هغه نه پس دنیا ته دحق هدایت کوی اوبه حق سره به عدل اوانصاف کوی. دهغوی امدادکونکی به زه دعزت والا کړم اود هغوی د یوځائ کونکو به زه امدادکوی. د هغوی په مخالفینو د هغوی په دښمنانو اوباغیانو اوبدخواهانوبه زه خرابې ورځې راولم. زه به هغوی د خپل نبی وارثان جوړکړم چه دخپل رب طرف ته به خلقو له دعوت ورکوی.دنیکو خبرې به ورته ښائی اودبدو نه به ئې منع کوی. مونځونه به کوی زکاتونه به ورکوی وعدې به پوره کوی. دا خیر به زه د هغوی په لاس پوره کوم، کوم چه د هغوی نه شروع شوې وو. هم دا دې زما فضل چاته چه غواړم ورکوم اوزه د ډیر لوئ فضل اوکرم مالك یم.

**علی رضی الله عنه او معاذ رضی الله عنه ته د نبی کریم ﷺ هدایت**.- ابن ابی حاتم کښې دی چه حضور ﷺ حضرت علی رضی الله عنه او حضرت معاذ رضی الله عنه د یمن حاکمان جوړکړې لیګلو وو نودا آیت نازل شو. نوحضور ﷺ هغوی ته اوفرمائیل لاړ شئی زیری واورونئی او نفرت مه خوروی آسانی پیداکړئی سختی مه کوئی ګورئی په ماباندې دا آیت نازل شوې دې. (1) په طبرانی کښې داهم دی په ماباندې دانازل شوی دی چه اې نبی مونږ ته په خپل امت باندې ګواه جوړ کړې د جنت زیرې ورکونکې اود دوزخ نه ویرونکې جوړکړې اود الله ﷻ په حکم

---

1) طبرانی:۱۱۸٤۱

سره د هغه دتوحید د شهادت طرف ته خلق رابلونکي جوړکړي اوپه روښانه چراغ قران سره لیګلي نی[1]، نوهغوی دالله ﷻ په وحدانیت سره چه هغه سره بل څوك معبود نشته ګواه دی.اود قیامت په ورځ به هغوی د خلقو په اعمالو باندې ګواه وی.لکه چه ارشاد دي ﴿وَجِئۡنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ شَهِيدًا﴾[2] یعنی مونږ به تاپه هغوی باندې ګواه جوړوو راولوبه دي. په بل آیت کښې دی چه تاسو په دوی باندې ګواه نی اوپه تاسو باندې دارسول ګواه دي.حضورﷺ مؤمنانوته دښکلې اجر اوزیرې اوروونکې اوکافران د سخت خراب عذاب نه ویرونکې او اوروونکې نی. اود الله ﷻ حکم دې چه د دې د پوره کولو لاندې ته مخلوق د خالق د عبادت طرف ته رابلونکې نی. ستا صداقت داسې ظاهر دې لکه د نمر رڼا. اوکه څوك ضدی اونخلی نوهغه بله خبره ده. اې نبی د کافرانو او منافقانوخبره مه منه اومه دهغوی طرفته غوږ نیسه اوهغوی معاف کوه. دا چه کوم تکلیفونه دررسوی دا په خیال کښې هم مه راوله اوپه الله ﷻ باندې پوره بهروسه کوه هغه کافی دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ | | | | |
| اے هغه کسانو | | | | |
| اې مومنانو | | | | |
| ءَامَنُوٓاْ | إِذَا | نَكَحۡتُمُ | ٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ | ثُمَّ طَلَّقۡتُمُوهُنَّ |
| چې ایمان مو راوړې دې | کله چې | نکاح اوکړئ تاسو | دمومنانو ښځوسره | بیا طلاق ورکړئ هغوئ له |
| هرکله چې دمسلمانانو ښځو سره نکاح اوکړئی | | | | بیا دلاس لګولو نه وړاندې ورته طلاق ورکړئ |
| مِن قَبۡلِ | أَن تَمَسُّوهُنَّ | فَمَا لَكُمۡ | عَلَيۡهِنَّ | |
| مخکښې ددې نه | چې تاسو مسح کړئ هغوئ | نو لازم نۀ دې ستاسو دطرفنه | په هغوئ باندې | |
| ............نو ستاسود طلاق په وجه دهغوئ دپاره هیڅ عدت نشته | | | | |
| مِنۡ عِدَّةٖ | تَعۡتَدُّونَهَاۖ | فَمَتِّعُوهُنَّ | | |
| هیڅ عدت | چې تاسو مطالبه اوکړئ دپوره کیدو دهغې | پس (نفع) څه مال ورکړئ هغوئ له | | |
| چې شمیر ئې کړئ | ............نو څه مناسب سامان ورته ورکړئی | | | |
| وَسَرِّحُوهُنَّ | سَرَاحٗا جَمِيلٗا ۝ | | | |
| او ازادې کړئ هغوئ | په ازادلو ښو سره | | | |
| اوپه ښه طریقه ئې رخصت کړئی | | | | |

قوله تعالی:- ثُمَّ طَلَّقۡتُمُوهُنَّ مِن قَبۡلِ أَن تَمَسُّوهُنَّ

که د جماع نه اول طلاق ورکړې شی نوڅنګه ده؟:- په دې آیت کښې ډیراحکام دی. دې نه معلومیږی چه صرف په عقدسره هم دنکاح اطلاق کیږی. ددې په ثبوت کښې د دې نه زیات د صراحت والا آیت بل نشته.په دې کښې اختلاف دې چه لفظ نکاح په حقیقت کښې صرف دایجاب اوقبول دپاره دې؟که صرف د جماع د پاره دې؟یاد دې دواړو د مجموعې دپاره دې؟ په قرآن کریم کښې اطلاق عقداووطی دواړو باندې دې. خو په دې آیت کښې صرف په عقدباندې اطلاق دې. د دې آیت نه داهم ثابتیږی چه د

---

[1] مجمع الزوائد:۷/۹۲

[2] ٤/النساء:٤١

دخول نه اول هم سرې خپلې ښځې ته طلاق ورکولې شي. د مؤمنات ذکردلته په وجه دغلبه شوې دې گنې داهل کتابو په ښځوباندې هم دغه حکم دې. دسلفو یوې لوئې ډلې د دې آیت نه استدلال کولوسره ونیلی دی چه طلاق هم هغه وخت واقع کیږی کله چه د دې نه اول نکاح شوې وی. په دې آیت کښې د نکاح نه پس طلاق فرمائیلې دې نومعلومه شوه چه د نکاح نه اول نه طلاق صحیح دې اونه واقع کیږی (۱)امام شافعی اوامام احمد رحمهما الله اود ډیر لوئ جماعت د سلف اوخلف دامذهب دې. د امام مالك اوامام ابوحنیفه رحمهما الله خیال دا دې چه د نکاح نه اول هم طلاق صحیح کیږی. مثلاً یوسړې اووائی چه که ما فلانکې ښځې سره نکاح اوکړه نو په هغه باندې طلاقه ده نوچه اوس کله هم دې سره نکاح اوکړی نو به هغه باندې طلاقه ده. بیا د امام مالك اوامام ابوحنیفه رحمهما الله په دې کښې په هغه سړی باندې اختلاف دې چه اووائی کومې ښځې سره چه هغه نکاح اوکړی په هغه طلاقه ده نوامام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی کومې سره چه هغه نکاح اوکړی هغه به طلاقه وی

**د نکاح نه وړندې هم د طلاق واقع کول صحیح کیږی**

**مسلك حنفی:** کله چې یو سړې اجنبی ښځې ته اووائی چې کله هم ته زما په نکاح کښې راشی نو ته دې طلاقه یې نو په نکاح کښې راتلو سره دغه ښځه په هر وار طلاقیږی اګرچې د بل خاوند سره نکاح اوکړی اوهغه ورته طلاق ورکړی (تسهیل الهدایه شرح هدایه ۳۴۱۱۳).

اود امام مالك رحمه الله قول دې چه نه به کیږی. ځکه چه یوه خاص ښځه هغه نه ده یاده کړې. جمهور چه د دې خلاف دی د هغوی دلیل دا آیت دې. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه چاتپوس اوکړو که د نکاح نه مخکې یو سړې دا ونیلې چه زه د کومې ښځې سره نکاح اوکړم نو هغه په ده طلاقه ده د دې څه حکم دې؟ هغوی دا آیت تلاوت کړو اوونی فرمائیل په دې صورت کښې به طلاق نه کیږی. ځکه چه الله ﷻ رب العزت طلاق د نکاح نه پس فرمائیلې دې نود نکاح نه اول طلاق هیڅ ځیز نه دې.

مسنداحمد ابوداؤد ترمذی ابن ماجه کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی بنیادم چه د کوم ځیز مالك نه وی په هغې کښې طلاق نشته. (۲) یوبل حدیث کښې دی چه کوم طلاق د نکاح نه وړاندې اوشی هغه په یو شمیرکښې هم نه راځی(۳)الله ﷻ فرمائی چه کله تاسو ښځو له دنکاح نه اول لاس لګولونه طلاق ورکړئی نو په هغوی باندې هیڅ عدت نشته بلکه هغه چه چاسره غواړی هم هغه وخت نکاح کولې شی.اوکه په داسې حالت کښې دهغې خاوندمړشوې وی نوداحکم نه دې. دا به خلور میاشتې او لس ورځې عدت تیروی. د علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه د نکاح نه پس د لاس لګولو نه وړاندې که خاوند دې له طلاق ورکړونوکه مهر مقررشوې وی نود هغې نیم به ورکوی ګنی څه لږ ډیر ورکول کافی دی. یوبل آیت کښې دی ﴿وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ إِلَّا أَنْ يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَ الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۚ وَأَنْ تَعْفُوا أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ۚ وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾(۴)یعنی که مهر مقرر شوې دې اود لاس لګولونه اول نی طلاق ورکړو نود نیم مهر حقداره ده اویوبل آیت کښې ارشاد باری تعالی دې ﴿لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً ۚ وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ﴾(۵) یعنی که ته خپلې ښځې له د لاس لګولونه وړاندې طلاق ورکړې نو دا څه د ګناه خبره نه ده. که د هغې مهر مقررشوې نه وی نوهغې له څه نه څه ورکړه اوهغه به دخپل خپل طاقت

---

(۱) الطبری: ۲۰/۲۸۳.

(۲) ابوداؤد کتاب الطلاق باب الطلاق قبل النکاح: ۲۱۹۰وسنده حسن، ترمذی: ۱۱۸۱، ابن ماجه: ۲۰۴۷،احمد: ۲/۱۸۹، حاکم: ۲/۲۰۵

(۳) ابن ماجه کتاب الطلاق باب لاطلاق قبل النکاح: ۲۰۴۸وهو حسن.

(۴) ۲/البقرة: ۲۳۷.

(۵) ۲/البقرة: ۲۳۷.

مطابق مالدار اوغريب د دستور مطابق دې هغې سره سلوك اوكړي په خو خلقو باندې دا ضروري دى. هم داسې يوه واقعه پخپله حضور اكرم ﷺ سره هم راپيښه شوه چه حضور ﷺ اميمه بنت شراحيل سره نكاح اوكړه دا رخصت شوه راغله.حضور ﷺ لاړو لاس ئې وراوړل غوښتل خو لكه چه هغې دا خوښ نه كړه حضور ﷺ حضرت ابوأسيد ﷺ ته حكم اوكړو د دې سامان تياركړه اودوه كپړې ارزقيه دې له وركړه. (۱)

نو سراح جميل يعنى په ښه طريقه سره رخصت كول هم دا دى چه كه په دې صورت كښې مهرمقرر وي نونيم وركړنې اوكه مقررنه وي نود خپل طاقت مطابق دې هغې سره سلوك اوكړي شي. (۲)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ | إِنَّآ | أَحْلَلْنَا | لَكَ | |
| اے نبى | بيشكه مونږه | احلالې كړې | استا دپاره | |
| ائې نبى ﷺ! مونږ ستا دپاره ستا بيبيانې حلالې كړې دى | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَزْوَٰجَكَ | ٱلَّٰتِىٓ | ءَاتَيْتَ | أُجُورَهُنَّ | وَمَا | مَلَكَتْ |
| بيبيانې ستا | هغه بيبيانې | چې وركړې دې تا | مهر دهغوئ | او هغه ښځې | چې مالك شى |
| چې تا ورته مهر وركړې دې \| اوهغه ښځې هم چې ستا په ملكيت كښې دى | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَمِينُكَ | مِمَّآ | أَفَآءَ ٱللَّهُ | عَلَيْكَ |
| ښئ لاس ستا دهغوئ | په هغه وينځو كښې | چې په غنيمت كښې دركړې دى الله | تاته |
| چې الله ﷺ درته په غنيمت كښې دركړې دى | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَبَنَاتِ | عَمِّكَ | وَبَنَاتِ | عَمَّٰتِكَ | وَبَنَاتِ خَالِكَ | وَبَنَاتِ خَٰلَٰتِكَ |
| او لونړه د ترۀ ستا | | او لونړه دپلار دخور ستا | | اولونړه \| دماما ستا | او لونړه دمور دخور ستا |
| او ستا د ترۀ لونړه او ستا دترورپانو لونړه او ستا دماما گانو لونړه او ستا دخاله گانو لونړه | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ٱلَّٰتِى | هَاجَرْنَ | مَعَكَ | وَٱمْرَأَةً مُّؤْمِنَةً | إِن وَهَبَتْ | نَفْسَهَا | |
| دغه | چې هجرت ئې كړې دې | ستا سره | او هغه ښځه مومنه | چې اوبښى | ځان خپل | |
| دغه چې تا سره ئې هجرت كړې دې \| اوهغه مومنه ښځه چې خپل ځان (بې عوضه) نبى ﷺ | | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِلنَّبِىِّ | إِنْ أَرَادَ ٱلنَّبِىُّ | أَن يَسْتَنكِحَهَا | خَالِصَةً لَّكَ |
| نبى ته | كه اراده لرى نبى | چې په نكاح واخلى هغه | دا رعايت خاص ستا دپاره دې |
| ته اوبښى \| هله كه نبى ﷺ ئې په نكاح كښې راوستل اوغواړى \| داحكم خاص ستادپاره دې | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۗ | قَدْ عَلِمْنَا | مَا | فَرَضْنَا |
| نه دپاره د نورو مومنانو | معلوم دى مونږ ته | هغه حدونه | چې مقرر كړې دى مونږه |
| نورو مومنانو دپاره داسې (بې مهره د نكاح كولو) حكم نه دې \| مونږ ته هغه حكمونه معلوم دى \| كوم | | | |

(۱) صحيح بخارى كتاب الطلاق باب من طلق وهل يوجه الرجل امراته بالطلاق: ۵۲۵۶.
(۲) الطبرى: ۲۸۳/۲۰.

عَلَيۡهِمۡ فِيٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ وَمَا مَلَكَتۡ

په هغوئ باندې|په باره دښځو دهغوئ کښې||اوپه باره دهغه وينځوکښې اچې مالکان شوي دي دهغې

چې مو په دوئ باندې د بيبيانو او وينځو په حق کښې مقرر کړې دی

أَيۡمَٰنُهُمۡ لِكَيۡلَا يَكُونَ عَلَيۡكَ

ښې لاسونه دهغوئ | (ته مو ددې حدونو نه جدا ساتلې ني ) دپاره ددې | چې نه وی | په تا باندې

.........د دې دپاره چې په تا باندې څه تنګسيا رانشی

حَرَجٞۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا

څه تنګی | اودې الله | ښښونکې | مهربانه |

او الله ﷻ ډير ښښونکې مهربان دې |

قوله تعالى:- يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِنَّآ أَحۡلَلۡنَا لَكَ

**پيغمبر ﷺ ته دډيروښځو اجازت:-** الله ﷻ خپل نبی کريمﷺ ته فرمائی تاچه کومو خپلو بيبيانوته مهر ورکړې دې هغه ټولې په تا حلالې دی. دحضورﷺ د ټولوازواج مطهرات رضی الله عنهن مهردولس نيمې اوقيې وو د کوم چه ۵۰۰ درهم کيږی. اود ام حبيبه بنت ابی سفيان رضی الله عنها مهر حضرت نجاشی رحمه الله د خپل خان نه څلورسوه دينار ورکړې وو اودغه شان حضرت صفيه بنت حيی رضی الله عنها مهرصرف دهغې آزادی وه. دخيبر د قيديانونه هغه هم وه. بيا حضورﷺ دا آزاده کړه اوهم دا آزادی مهر اوګرځوله او نکاح نی اوکړه. حضرت جويريه بنت حارثه رضی الله عنها مصطلقه په څومره رقم باندې مکاتبه کړې وه هغه پوره رقم هغوی حضرت ثابت بن قيس بن شماس رضی الله عنه ته ادا کړو اوهغې سره نی نکاح اوکړه. الله ﷻ دې په ټولوازواج مطهرات رضی الله عنهن باندې خپله رضامندې نازله کړې. دغه شان کومې وينځې چه د غنيمت په مال کښې د حضورﷺ په قبضه کښې راغلې هغه هم په هغوی باندې حلال دی. د صفيه او جويريه رضی الله عنهن حضورﷺ مالك شوې وو بياحضورﷺ هغوی آزادې کړې او هغوی سره نی نکاح اوکړه. ريحانه بنت شمعون نصريه اوماريه قبطيه رضی الله عنهن هم د حضورﷺ په ملکيت کښې راغلې وې. دحضرت ماريه رضی الله عنها نه د حضورﷺ يو فرزندهم شوې وو د کوم نوم چه حضرت ابراهيم عليه السلام وو. د نکاح باره کښې نصرانيانو د افراط اويهوديانود تفريط نه کار اخستې وو په دې وجه د دې عدل او انصاف آسان اوصفاشريعت درميانه لار د حق ښکاره کړه. نصرانيان خود اووه پشتوپورې چه د کومې ښځې اوسرې نسب نه ملاويږی هغوی به دا نکاح جائزګنړله اويهوديانوبه د خور او رور لورسره هم نکاح کوله نواسلام د خورځې او اوريرې سره نکاح کول منع کړل اود تره لور ترور لور او ماما لور د خاله لور سره نی نکاح مباح اوګرځوله. ددې آيت په خوبيانوباندې نظرواچونی چه د عم خال، تره او ماما لفظ نی خوواحدراوړې اودعمات اوخالات يعنی ترورريانواوخاله ګانو لفظ نی جمع راوړې. په کوم کښې چه يو قسم فضيلت دسړو په ښځو باندې ثابتيږی لکه ﴿يُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَوۡلِيَآؤُهُمُ ٱلطَّٰغُوتُ يُخۡرِجُونَهُم مِّنَ ٱلنُّورِ إِلَى ٱلظُّلُمَٰتِۗ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ﴾[1] اولکه ﴿وَجَعَلَ ٱلظُّلُمَٰتِ وَٱلنُّورَۖ ثُمَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمۡ يَعۡدِلُونَ﴾[2] دلته هم ظلمات اونور يعنی تيارې اورڼرا ذکردې اود رڼرا په تياره باندې فضيلت

[1] الطبری: ۲۰/۲۸۳.

[2] ٦:الانعام:١.

دې پدې وجه نې لفظ ظلمات جمع راوړو اونور نې مفرد. د دې نورهم ډېر مثالونه ورکولې کیدې شي. بیا فرمائي چه کومو خلقو تاسره هجرت کړې دې. حضرت ام هاني ﷺ فرمائي ماپسې د رسول الله ﷺ غوښتنه راغله نو ما معذرت ښکاره کړو کوم چه حضور ﷺ اومنلواودا آیت نازل شو. زه په هجرت کونکې ښځوکښې نه ووم بلکه د مکې د فتح نه پس په ایمان راوړونکوکښې ووم. (١)

د «هَاجَرْنَ مَعَكَ» مطلب - مفسرینوهم داوئیلي چه مرادهم دادې چه کومومدینې طرف ته حضور ﷺ سره هجرت کړې وي. د قتاده ﷺ نه په یوروایت کښې د دې نه مراد اسلام راوړل هم بیان شوي دي. د ابن مسعود ﷺ په قراءت کښې (واللاتی هاجرن معك) دي(٢) بیافرمائي چه هغه مؤمنه ښځه چه خپل نفس د نبي ﷺ دپاره هبه کړي اونبي ﷺ هم هغې سره نکاح کول غواړي نوبغیرمهر نه هغه په نکاح کښې راوستې شي. بیاداحکم په دوو شرطونوسره دې. لکه آیت ﴿وَلَا يَنْفَعُكُمْ نُصْحِيْٓ اِنْ اَرَدْتُّ اَنْ اَنْصَحَ لَكُمْ اِنْ كَانَ اللّٰهُ يُرِيْدُ اَنْ يُّغْوِيَكُمْ ؕ هُوَ رَبُّكُمْ ۟ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ؕ﴾(٣) کښې یعني حضرت نوح ﷺ خپل قوم ته فرمائي که چرې زه تاسو ته نصیحت کول غواړم اوالله تعالی تاسو په دې نصیحت باندې مستفید کول نه غواړي نو زما نصیحت تاسو ته هیڅ فائده نه شي درکولې. اولکه د موسی ﷺ په دې فرمان کښې ﴿اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّسْلِمِيْنَ ۝﴾(٤) یعني اې زما قومه که چرې تاسو په الله ﷻ باندې ایمان راوړو اومسلمانان شوي نې نو تاسو له هم په الله ﷻ باندې بهروسه اویقین پکاردې. نولکه چه څنګه په دې دواړو آیاتونوکښې دوه شرطونه دي دغه شان په دې آیت کښې هم دوه شرطونه دي. یوخودهغې خپل نفس هبه کول اوبل درسول الله ﷺ هغه په خپله نکاح کښې راوستلواراده کول. مسنداحمدکښې دي رسول الله ﷺ له یوه ښځه راغله اووئې وئیل چه زه خپل ځان تاسوته هبه کول غواړم. بیا هغه د ډېر وخته پورې ولاړه وه نویوصحابي ﷺ اودریدو ونې وئیل یارسول الله ﷺ که تاسو دې سره د نکاح اراده نه لرئي نوزما په نکاح کښې راکړئې. حضور ﷺ اوفرمائیل چه تاسره څه شته هم؟ چه دې ته نې په مهرکښې ورکړې. جواب نې ورکړو چه د دې تهبندنه علاوه راسره هیڅ نشته. حضور ﷺ اوفرمائیل چه که دا ته دې ته ورکړې نو پخپله به بغیرد تهبندپاتې شې نور څه اولټوه. هغه وئیل ماسره نورهیڅ نشته. حضور ﷺ اوفرمائیل چه لټون خواوکړه که د اوسپنې چرته یوه ګوته هم وي. هغه ډېر کوشش اوکړو خو هیڅ نې هم بیا نه موندل. حضور ﷺ اوفرمائیل د قرآن پاك څه سورتونه هم تاته یاد دي؟ هغه وئیل اوفلانکې فلانکې سورتونه راته یاد دي. نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه بس هم په دې سورتونوباندې دا ما ستا په نکاح کښې درکړه. داحدیث په بخاري اومسلم کښې هم دي(٥) حضرت انس ﷺ چه کله دا واقعه بیان کړه نود هغه لور هم اوریدله. وئیل په دې ښځه کښې ډېره کمه حیا وه. نوهغوي اوفرمائیل تانه ډېره بهتره وه چه دحضور ﷺ د خدمت رغبت نې کولو اوحضور ﷺ ته نې خپل نفس اوخان پیش کولو (٦)

**ځینې هبه کوونکي ښځې نبي کریم ﷺ رد کړي هم دي** - مسنداحمدکښې دي یوه ښځه دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اود خپلې لور نې ډېرزیات صفتونه اوتعریفونه اوکړل او ونې وئیل حضور ﷺ زما مطلب دادې چه تاسو هغې سره نکاح اوکړئې. حضور ﷺ قبوله کړه. هغې بیاهم تعریفونه کول تردې چه

---

(١) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة الاحزاب: ٣٢١٤، حاکم: ٢/٤٢٠، بیهقی: ٧/٥٤.
(٢) الطبری: ٢٠/٢٨٥.
(٣) ١١/هود: ٣٤.
(٤) ١١/هود: ٣٤.
(٥) صحیح بخاری کتاب النکاح باب تزویج المعسر: ٥٠٨٧، صحیح مسلم: ١٤٢٥، احمد: ٥/٣٣٦، ابوداؤد: ٢١١١، ترمذی: ١١١٤، ابن ماجه: ١٨٨٩، ابن حبان: ٤٠٩٣.
(٦) صحیح بخاری کتاب النکاح باب عرض المراة نفسها علی الرجل الصالح: ٥١٢٠، احمد: ٣/٢٦٨.

ونی وئیل حضورﷺ نه هغه چرته بیماره شوې ده اونه نی په سر درد راغلې دې. دې اوریدو سره حضورﷺ اوفرمائیل چه بیاخوماته دهغې هیڅ حاجت نشته(۱)حضرت عائشه رضی الله عنها فرمانی چه خپل ځان هبه کونکې بی بی حضرت خوله بنت حکم رضی الله عنها وه. یوبل روایت کښې دی چه دا د قبیله بنوسلیم نه وه یو بل روایت کښې دی چه دا ډیره نیك بخته ښځه وه. ممکن ده چه ام سلیم حضرت خوله رضی الله عنها وی. او دا هم کیدې شی چه دا چرته بله ښځه وی.

**نبی کریم ﷺ دیارلس ښځو سره نکاح کړې وه:-** ابن ابی حاتم کښې دی چه حضورﷺ دیارلسوښځوسره نکاح کړې په کوموکښې چه شپږ خو قریشیه وې. خدیجه عائشه حفصه ام حبیبه سوده او ام سلمه رضی الله عنهن اودرې د بنوعامر صعصعه د قبیلې نه وې اودوه بیبیانې د قبیله بنوهلال بن عامر نه وې. حضرت میمونه بن حارث هم دا وه چه خپل ځان نی رسول الله ﷺ ته هبه کړې وو اوحضرت زینب دچا کنیت چه ام المساکین وو اویوه ښځه بنی بکربن کلاب داهم هغه وه چه دنیائی اختیارکړې وه اود بنوجون نه یوه ښځه کومې چه پناه غوښتې وه اویوه اسدیه د کوم نوم چه زینب بنت جحش رضی الله عنها ده. دوه وینځې وې. صفیه بنت حیی بن اخطب او جویریه بنت حارث بن عمرو بن مصطلق خزاعیه رضی الله عنهن. دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه خپل ځان هبه کونکې ښځه میمونه بنت حارث رضی الله عنها وه. خوپه دې کښې انقطاع ده اودارروایت مرسل دې.دامشهوره خبره ده چه زینب بنت جحش رضی الله عنها دچا کنیت چه ام المساکین وو دا زینب بنت خزیمه وه. د قبیله انصار نه وه اودحضورﷺ په ژوند کښې وفات شوه. والله أعلم.

مقصددا چه کومو ښځو حضورﷺ ته دخپل نفس اختیاروکړې وو هغه ډیرې دی. په صحیح بخاری کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې ما به په دغه ښځو باندې غیرت کولو چه خپل نفس به نی حضورﷺ ته هبه کولو اوزه به ډیره زیاته حیرانه شوم چه ښځې خپل نفس هبه کوی. کله چه دا آیت نازل شو چه ﴿ تُرْجِي مَن تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَتُـْٔوِيٓ إِلَيْكَ مَن تَشَآءُ ۖ وَمَنِ ٱبْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ۚ ذَٰلِكَ أَدْنَىٰٓ أَن تَقَرَّ أَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَآ ءَاتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ۚ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي قُلُوبِكُمْ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَلِيمًا ﴾(۲)ته چه په دوی کښې کوموسره غواړې مه کوه اوکوموسره چه غواړې نوهغوی له خپل ځان سره ځائ ورکړه اود کومونه چه تا جداوالې اوکړو که هغه هم ته راوړې نوپه تاڅه نقصان نشته. نوما وئیل چه بس الله ﷻ په تاسوباندې ښه وسعت او ارتوالې کړې دې. (۳)

**ایا دنبی کریم ﷺ په بیبیانو کښې هبه کوونکې هم وه ·** دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه حضورﷺ سره یوه هم داسې ښځه نه وه چه هغې خپل نفس حضورﷺ ته هبه کړې وی. حضرت یونس بن بکیر رحمه الله فرمائی چه دحضورﷺ د پاره دامباح وه چه کومه ښځه خپل ځان پخپله حضورﷺ ته حواله کړی هغه دې حضورﷺ په خپل کورکښې اوساتی ولې حضورﷺ داسې کړی نه دی ځکه چه داکار نی هم د هغوی په مرضئی سره ساتلې وو. داخبره د بل چا د پاره جائزنه ده اوکه مهر اداکړی نوبیا جائزده. حضرت بروع بنت واشق رضی الله عنها باره کښې چاچه خپل ځان حواله کړې ووکله چه دهغې خاوند مړ شو نورسول الله ﷺ هم دا فیصله کړې وه چه د هغې د خاندان د نورو ښځو په شان دې هغې ته هم مهروركړې شی لکه مهر مثل مقرروی. دغه شان صرف په دخول باندې مهر واجب کیږی. اوحضورﷺ د دې حکم نه مستثنی وو داسې ښځو له څه ورکول په حضورﷺ باندې واجب نه وو. سره د دې که هغې ته شرف هم حاصل شوې وی ځکه چه هغوی ته بغیرد مهر نه اوبغیرد ولی نه اوبغیرد ګواهانونه نکاح کولو اختیاروو لکه چه د حضرت زینب بنت جحش رضی الله عنها په قصه کښې دی.

---

۱) احمد:۳/۱۵۵ مسندابی یعلی:٤۲۳٤، مجمع الزوائد:۲/۲۹٤.

۲) ۳۳/الاحزاب: ۵۱.

۳) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله ﴿ترجی من تشاء منهن...﴾:٤۷۸۸، صحیح مسلم:۱٤٦٤.

**بغیر د مهر او ولی نه ښځې سره نکاح کول جائز نه دي سوی د نبی نه:-** حضرت قتاده رحمه الله فرمائی یوې ښځې له هم داجائزنه دی چه خپل خان بغیرد ولی یا بغیرد مهر نه د چا په نکاح کښې ورکړی. دا صرف درسول الله ﷺ د پاره وو(۱)اوپه نوروموٴمنانوباندې کوم مونږ مقرر کړی دی هغه مونږ ښه پیژنو یعنی هغوی دځلورونه زیاتې ښځې نه شی ساتلې.اوپه نورو موٴمنانو باندې کوم مونږ مقررکړی دی هغه مونږ ښه پیژنو یعنی هغوی د څلورونه زیاتې ښځې نه شی ساتلې(۲)او ددې نه علاوه وینځې ساتلې شی اودهغې هیڅ شمیر مقررنه دی. دغه شان د ولی دمهر اود ګواهانو هم شرط دې.نودامت د پاره خوداحکم دې او په حضور ﷺ باندې دا پابندئی نشته دې د پاره چه په حضور ﷺ باندې هیڅ حرج نه وی. الله ﷻ ډیر ښنونکې اومهربان دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تُرْجِيْ | مَنْ | تَشَآءُ | | | |
| جدا کړه ته | هغه ښځې اچې غواړې ته | | | | |
| په دې بیبیانو کښې ته چې کومه غواړې نو دخان نه ئې | | | | | |
| مِنْهُنَّ | وَتُـْٔوِيْٓ اِلَيْكَ | مَنْ | تَشَآءُ ؕ | وَمَنِ | |
| دهغوئ نه | اواوساته دخان سره | هغه ښځې | چې ته غواړې ساتل دهغې | او هغه ښځې | |
| په ډډه ساته | اوچې ته غواړې نو خان ته ئې رانزدې کړه | ........... اوکومه چې | | | |
| ابْتَغَيْتَ | مِمَّنْ | عَزَلْتَ | فَلَا جُنَاحَ | عَلَيْكَ ؕ | |
| چې بیا ئې طلب کړې ته | دهغه ښځو نه | چې جدا کړی دی تا | پس نشته دې ګناه | په تاباندې | |
| دې په ډډه ساتلې وی | که هغه (بیانزدې کول) اوغواړې | نو په دې کښې هیڅ ګناه نشته | | | |
| ذٰلِكَ | اَدْنٰٓى | اَنْ | تَقَرَّ | اَعْيُنُهُنَّ | وَلَا يَحْزَنَّ |
| دا کار | نزدې دې | دې ته چې | یخې به شی | سترګې دهغوئ | اونه به غمژنې کیږی |
| په دې حکم سره زیات امید دې | چې د هغوئ سترګې یخې شی | او غمژنې نه شی | | | |
| وَيَرْضَيْنَ | بِمَآ | اٰتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ؕ | وَاللّٰهُ يَعْلَمُ | مَا | |
| او راضی به وی هغوئ | په هغې | چې ورکوې ته هغوئ ټولو ته | او الله پوهیږی | په هغه څه | |
| اوته چې څه هغوئ ته ورکړې | هغه ټولې به په هغې راضی وی | ......اوالله ﷻ ته ستاسو د | | | |
| فِيْ قُلُوْبِكُمْ ؕ | وَكَانَ اللّٰهُ | عَلِيْمًا | حَلِيْمًا ۝ | | |
| چې په زړونو ستاسو کښې دی | او دې الله | په هر څه پوهه | صبرناک | | |
| زړونو حال معلوم دې | ............ اوهغه په هر څه پوهه بردبار دې | | | | |

**قوله تعالی:- تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ**

**پیغمبر ﷺ ته بیبیانې ساتلو کښې اونه ساتلوکښې اختیار دې:-** بخاری شریف کښې دحضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دی چه ماله په هغه ښځو شرم رانلو چه خپل خان حضور ﷺ ته هبه کړی. ونیل به نی چه بغیر دمهرنه خپل خان حضور ﷺ ته حواله کولوباندې نه شرمیږئی؟ تردې چه داآیت نازل شو نوما

(۱) الطبری: ۲۸۸/۲۰.

(۲) الطبری: ۲۸۸/۲۰.

اوونیل چه ستا رب ستا خواهش پوره کولو کښې جلتی کوی( [1] )نومعلومه شوه چه دایت نه مراد هم دغه ښځې دی.دهغوی باره کښې دالله نبی ﷺ ته اختیاردې چه کومه غواړی قبوله کړی اوکومه چه نه غواړی نه قبلوی.بیاد دې نه پس داهم دحضور ﷺ په اختیارکښې شته چه کومه قبوله نه کړی اوهغه کله هم غواړی مهربانی پرې اوکړی. د عامر شعبی رحمه الله نه روایت دې کومه چه نې روستوکړې وه هغه ام شریك وه.

د ﴿تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ﴾ مطلب دې؟:-د دې جمله یومطلب دا هم بیان کړې شوې دې چه په خپلو بیبیانوکښې حضور ﷺ ته داهم اختیار وو چه که غواړی نوتقسیم دې کړی اوکه نه غواړی نو نه دې کوی. کومه چه غواړی مقدم دې کړی اوکومه چه غواړی مؤخر دې کړی دغه شان خاص خبرې اترې هم. خودا یاد ساتئی چه حضور ﷺ په خپل پوره عمر برابر په خپلو بیبیانوکښې عدل اوانصاف سره تقسیم کړې دې. د بعضې شافعی فقهاؤداقول دې چه په حضوراکرم ﷺ باندې تقسیم واجب وو.

صحیح بخاری شریف کښې دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه د دې آیت د نازلیدلو نه پس به دالله ﷻ نبی ﷺ زمونږ نه اجازت اخستلو. ماته خو چه به نې کله هم فرمائیل نوما به ونیل چه که زما په وس کښې وې نو چرې به مې هم بل طرف ته نه پریخودو( [2] ) نوصحیح خبره چه کومه ډیره ښه ده اوپه دې اقوالوکښې مطابقت هم کوی هغه دادې چه آیت عام دې. خپل خان حواله کونکواود حضور ﷺ بیبیانو ټولوته شامل دې د هبه کونکوښځو باره کښې نکاح کول اونه کول اود نکاح والا په ښځوکښې تقسیم کول د حضور ﷺ په اختیارکښې وو( [3] )

**رسول کریم ﷺ به د اختیار باوجود نمبر ایخودو**:-بیافرمائی چه دغه حکم بالکل مناسب دې اود رسول الله ﷺ د ازواج مطهراتو د پاره آسانئی والا دې. کله چه هغوی ته پته اولګیده چه هغه د نمبر مکلف نه دې خوبیاهم مساوات قائموی. نوهغوی به ډیرې خوشحاله وی اوممنون اوشکر ګذاره به وی اود هغوی د انصاف تعریف به کوی. الله ﷻ د زړونودحالت نه خبردې هغه پوهیږی چه د چاکوم طرف ته ډیر رغبت دې.مسنداحمدکښې دی چه حضوراکرم ﷺ به په خپله توګه په پوره عدل سره صحیح تقسیم کولونه پس هم د الله ﷻ په وړاندې داسې عرض کولو اله العالمین ترکومې چه زما په وس کښې وه ما خپل انصاف اوکړو.اوس چه کوم زما په وس کښې نه وی په هغې باندې زما ملامتیامه کوه( [4] )یعنی د زړه درجوع اختیارماته نشته. الله ﷻ دسینود خبروعالم دې خودحلم اوکرم والا دې سترګې پټوی او معافی کوی.

| |
|---|
| لَا يَحِلُّ |
| حلالې نه دی |
| ددې موجوده ښځو نه علاوه نورې |

[1] ) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله ﴿ترجی من تشاء منهن...﴾ :۴۷۸۸، صحیح مسلم:۱۴۶۴
[2] ) صحیح بخاری حواله سابق:۴۷۸۹، صحیح مسلم:۱۴۷۶، ابوداؤد:۲۱۳۶، احمد:۷۶/۶، ابن حبان:۴۲۰۶.
[3] ) الطبری:۳۰۴/۲۰.
[4] ) ابوداؤد کتاب النکاح باب فی القسم بین النساء:۲۱۳۴، وسنده صحیح، ترمذی:۱۱۴۰،نسائی:۳۳۶۵،ابن ماجه:۱۹۷۱، احمد:۱۴۴/۶، ابن ابی شیبه:۳۸۶/۴، دارمی:۱۴۴/۲، ابن حبان:۴۲۰۵، حاکم:۱۸۷/۲، بیهقی:۹۹۸/۷.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَكَ | النِّسَآءُ | مِنۢ بَعْدُ | وَلَآ اَنْ | تَبَدَّلَ | بِهِنَّ | مِنْ اَزْوَاجٍ |
| ستا دپاره | نوري ښځې | روستو ددې نه | او نۀ دا | چې بدلوې به ته | په ځاني ددوی | نوري ښځې |

ښځي (واده كول) ستا دپاره حلالې نه دي او دا هم جائز نه دي چې ته ددوی په بدل كښې نوري ښځې واخلې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَوْ اَعْجَبَكَ | حُسْنُهُنَّ | اِلَّا | مَا | مَلَكَتْ |
| اګر كه خوښ دي ستا | ښائيست دهغوی | مګر حلالې دي | هغه وينځې | چې مالك شي دهغې |

اګر كه دهغوی ښائست دې زړه ته پريوځي سوا ددې نه چې ستا وينځه وی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَمِيْنُكَ | وَكَانَ اللّٰهُ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | رَّقِيْبًا |
| ښی لاس ستا | او دې الله | په هر څيز باندې | نګران (ساتونكې) |

او الله ﷻ د هر څيز نګهبان دې

**قوله تعالى:- لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ**

**د ازواج مطهرات رضي الله عنهن د پاره د الله ﷻ انعام او ددې ايت مبارك اول مطلب:-** په اولنو آياتونو كښې تيرشوې دي چه رسول الله ﷺ خپل بيبيانوته اختيارورکړوکه هغوی غواړی نود حضورﷺ په نكاح كښې دې وی اوكه غواړی نو دحضورﷺ نه دې جداشي. خوامهات المؤمنين دحضورﷺ لمن پريخودل خوښ نه كړه. په دې باندې د الله ﷻ د طرف نه په دنياوی بدله كښې يودااملاوشوچه حضورﷺ ته په دې آيت كښې حكم اوشوچه اوس د دوی نه علاوه ته بلې ښځې سره نكاح نه شې كولې نه ته په دوی كښې د يوې پريخودوسره دهغې په بدله كښې بله راوستې شې كه هغه څومره ښائسته ولې نه وی؟ اود وينځو خبره بله ده. دې نه پس رب العالمين دحضورﷺ نه دا تنګی اوچته كړه اود نكاح اجازت نې وركړو خو پخپله حضوراكرم ﷺ بيابله نكاح اونه كړه.ددې حرج داوچتولو اوبيادعمل نه كولو يوډيرلوئ مصلحت دا وو چه د حضورﷺ دااحسان په بيبيانوباندې وی. د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه دحضورﷺ د وفات نه وړاندې الله ﷻ دهغوی د پاره نوري ښځې هم حلالې كړې وې.(¹) دحضرت ام سلمه رضي الله عنها نه داهم روايت دې چه د حلالولوايت ﴿ تُرْجِيْ مَنْ تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَتُـْٔوِيْٓ اِلَيْكَ مَنْ تَشَآءُ ۭ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ۭ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ تَقَرَّ اَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَآ اٰتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ ۭ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَلِيْمًا ﴾(²) دې يعنی چه كوم د دې آيت نه وړاندې تيرشوې دې.په بيان كښې هغه اول او په نازليدوكښې روستودې.سورت بقره كښې همدغه شان دوفات دعدت روستونی آياتونه منسوخ دی اوهم داړومبې آيت دهغې ناسخ دې. والله اعلم.

**دويم مطلب:-** ددې آيت يوه بله معنی هم د ډيروحضراتونه روايت ده هغوی وائی چه دې نه مطلب دا دې چه د كومو ښځو ذكر د دې نه وړاندې دې د هغې نه سوا حلال دی. د ابی بن كعب رضي الله عنه نه سوال اوشو چه آيا د حضورﷺ كومې بيبيانې وې كه هغه د حضورﷺ په موجودګئی وفات شوې وې نو حضورﷺ د نورو ښځو سره نكاح نه شوه كولې؟ هغه اوفرمائيل ولې؟ نوسوال كونكی﴿لايحل﴾والاآيت اولوستلو. دې اوريدوسره ابی بن كعب رضي الله عنه اوفرمائيل ددې مطلب خودادې چه د ښځوكوم قسمونه دې نه وړاندې بيان شوی دی يعنی نكاح شوې بيبيانې وينځې د تره لونړه ترورريانو ماماګانو خاله ګانو لونړه هبه

(¹) ترمذی كتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورة الاحزاب:۳۲۱۶وسنده صحيح، احمد:۶/۴۱، ابن حبان:۶۳۶۶.(ترمذی نسائی وغيره)

(²) ۳۳/الاحزاب:۵۱.

کیدونکي ښځې اوددې نه سوا چه بل قسم وی په کوموکښې چه داصفتونه نه وی هغه به حضورﷺ باندې حلالې نه دی.(ابن جرير)ابن عباس ﷺ فرمائي چه ددې مهاجرو مؤمنو ښځوسره نکاح کولونه حضورﷺ منع کړې شو.غیرمسلم ښځوسره ئې نکاح حرامه کړې ده.قرآن کريم کښې دی﴿وَمَن يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾([1])يعنې دایمان نه پس دکفرکونکی اعمال غرق دی. نوالله تعالی آيت ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَاجَكَ اللَّاتِي آتَيْتَ أُجُورَهُنَّ وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْكَ وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّاتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَالَاتِكَ اللَّاتِي هَاجَرْنَ مَعَكَ وَامْرَأَةً مُؤْمِنَةً إِنْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَنْ يَسْتَنْكِحَهَا خَالِصَةً لَكَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِي أَزْوَاجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ لِكَيْلَا يَكُونَ عَلَيْكَ حَرَجٌ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا﴾ ([2])کښې د ښځود کوم یو قسم ذکر دې هغه خو حلال دی دې نه علاوه نورې حرام دی. ([3])

**دريم مطلب:**-مجاهد رحمه الله فرمائی چه دې نه سواهرقسم ښځې که هغه مسلماناني وی یهودنړې اوکه نصرانیانې وی ټولې حرام دی.

**څلورم مطلب**.-ابوصالح رحمه الله فرمائی چه دبانده چی او ناپیژندګلو ښځو سره دنکاح نه ئې منع کړې وو خوچه کومې ښځې حلال وې که په هغوی کښې په سوونو واخلی نوهم حلال دی. غرض دا چه آیت عام دې هغه ښځې کومې چه دحضورﷺ په کورکښې وې اوهغه ښځې دکوموقسمونه چه بیان کړې شو ټولو ته شامل دې.اودکوموخلقو نه چه ددې په خلاف روایتونه دی دهغوی نه د دې مطابق هم روایت دې نو هيڅ څه منفي نشته.او پدې باندې يوه خبره باقي پاتې کيږي چه حضورﷺ حضرت حفصه رضي الله عنها ته طلاق ورکړې وو بيائی هغې ته رجوع کړې وه اود حضرت سوده رضي الله عنها نه ئې هم د جدائې اراده کړې وه په کومه چه هغې د خپل نمبر ورځ حضرت عائشه رضي الله عنها ته.ورکړه. د دې جواب امام ابن جرير رحمه الله دا ورکړې دې چه دا واقعه د دې آيت د نازليدلونه د وړاندې ده. خبره هم دا ده خو مونږ وايو د دې جواب هم څه ضرورت نشته ځکه چه په آيت کښې د هغوی نه سوا دنوروښځوسره دنکاح کولو اودا ويستوسره د تورو راوستو نه منع کړې شوې وو. د طلاق نه نه وو منع کړې شوې. والله اعلم. دحضرت سوده رضي الله عنها والا په واقعه کښې آيت ﴿ وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ وَأُحْضِرَتِ الْأَنْفُسُ الشُّحَّ وَإِنْ تُحْسِنُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا﴾]۴/النساء:۱۲۸. نازل شوې دې

**د حفصه رضی الله عنها د طلاق واقعه:**- اودحضرت حفصه رضي الله عنها والا واقعه په ابوداؤد وغيره کښې نقل ده. ([4]) ابويعلی کښې دی عمر ﷺ يوه ورځ حضرت حفصه رضي الله عنها له راغلوئی کتل چه هغې ژړل. تپوس ئی اوکړو چه کيدې شي تاته حضورﷺ طلاق درکړې وی واوره که رجوع اوشوه اوبيادامو قعه راغله نو په الله ﷻ قسم چه ترمرګه پورې به تاسره خبرې اونه کړم.([5]) په آيت کښې الله ﷻ حضورﷺ د زيات والی نه اوديوې په ويستلو سره بله راوستلونه منع کړې ووخووينځې حلال کړې وی.ابوهريره ﷺ فرمائي په جاهليت کښې يوخراب رواج داهم وو په خپل مينځ کښې به ئې د ښځوبدلون کولو. ده به خپله هغه ته ورکوله اوهغه به ده ته ورکوله. اسلام د دې ګنده طريقې نه مسلمانان منع کړل. د يوځل واقعې ذکر دې چه عيينه بن حصن فزاری ﷺ حضورﷺ له راغلو اود خپل جاهليت د رواج په شان بغيرد اجازت نه راغلو. هغه وخت حضورﷺ سره حضرت عائشه رضي الله عنها ناسته وه. حضورﷺ اوفرمائيل ته ولې بغيراجازت

---

[1]) ۵/المائدة:۵.

[2]) ۳۳/الاحزاب:۵۰.

[3]) ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة الاحزاب-۲۰، وسنده حسن.

[4]) ابوداوٗد کتاب الطلاق باب المرجعة:۲۲۹۳وسنده صحيح نسائی:۳۵۹۰، ابن ماجه:۲۰۱۶، ابن حبان:۴۲۷۵،

[5]) مسندابی یعلی:۱۷۲، ابن حبان:۴۲۷۶، دوعه نسخه:۴۲۶۳مجمع الزوائد:۲۴۴/۹.

دننه راغلي هغه ونيل واه ماخوترننه پوري د قبيله مضر په خاندان کښي د يوسړي نه هم اجازت نه دي غوښتي بيائي ونيل دا تاسره کومه يوه ښځه ناسته ده؟ حضور ﷺ اوفرمائيل ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها ده. هغه ونيل حضور ﷺ دا پريږده اوزه د دې په بدله کښې خپله ښځه تاسو ته درکوم چه په ښائست کښې بې مثاله ده.حضور ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ خوداسې حرام کړې دي.کله چه هغه لاړو نو موربى بى اوفرمائيل يارسول الله ﷺ داخوك وو؟حضور ﷺ اوفرمائيل يوبې وقوف سردار وو.تاد هغه خبرې واوريدې په دې سره هم هغه د قوم سردار دې[1] ددې روايت يو راوى اسحاق بن عبدالله بالكل د پريوتې درجې والا دى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا | | لَا تَدْخُلُوْا | بُيُوْتَ النَّبِيِّ | اِلَّآ | اَنْ يُّؤْذَنَ |
| اے هغه کسانو چې ايمان مو راوړې دې | | مه ننوځئ | کوررونو دنبى ته | مگر هله | چې اجازت اوکړې شي |
| اۍ مومنانو د پيغمبر کورونو ته مه داخليږئ | | | خوهله ورداخليږئ چې دخوراک دپاره درته اجازت اوکړې شي | | |
| لَكُمْ | اِلٰى طَعَامٍ | غَيْرَ نٰظِرِيْنَ | | اِنٰىهُ ۙ | وَلٰكِنْ |
| تاسو ته | خوړلو دطعام ته | په داحال چې نۀ يئ انتظار کونکى | | لوخې دپخکړې دهغه ته | وليکن |
| په دې طريقه چې دهغې طعام دپخلى انتظار مه کوئى | | | | ..........خو کله چې | |
| اِذَا | دُعِيْتُمْ | فَادْخُلُوْا | فَاِذَا | طَعِمْتُمْ | فَانْتَشِرُوْا |
| کله چې | دعوت درکړې شي تاسو ته | نو ننوځئ | پس هرکله چې | خوراك اوکړئ تاسو | نو خوارۀ شئ |
| دعوت درکړې شي نو بيا ورځئ | | ..........بيا چې ډوډۍ اوخورئ | | | ..........نو خوارۀ واره شئ |
| وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ | لِحَدِيْثٍ ؕ | اِنَّ | ذٰلِكُمْ كَانَ | | يُؤْذِى النَّبِيَّ |
| او مۀ کينئ مينه کونکى | دپاره دخبرو | بيشکه | دا کار ستاسو | | تکليف ورکوى نبى ته |
| او خبرو ته ښخ ناست مه پاتې کيږئى | | بيشکه ستاسو په دې خبرو پيغمبر ته تکليف رسى | | | |
| فَيَسْتَحْيٖ | مِنْكُمْ | وَاللّٰهُ | لَا يَسْتَحْيٖ | مِنَ الْحَقِّ ؕ | وَاِذَا |
| ليکن هغه حيا کوى | ستاسو نه | او الله | نۀ کوى حيا | دبيا نولو دحق نه | او کله چې |
| خو هغه ستاسو خاطر کوى ..........| | | او الله ﷻ په صفا وينا کښې دچا خيال نه ساتى | | | اوهرکله چې |
| سَاَلْتُمُوْهُنَّ | مَتَاعًا | فَسْئَلُوْهُنَّ | مِنْ وَّرَآءِ | حِجَابٍ ؕ | ذٰلِكُمْ |
| غواړئ تاسو دهغوئ نه | څه څيز | نو غواړئ دهغوئ نه | روستو | دپردې نه | دا کار ستاسو |
| د پيغمبر د بيبيانو نه څه څيز غواړئ | | نود پردې شاته ئې غواړئى | .......... | | داكار ستاسو |
| اَطْهَرُ | لِقُلُوْبِكُمْ | وَقُلُوْبِهِنَّ ؕ | وَمَا كَانَ | لَكُمْ | |
| ډير پاك دې | دپاره دزړونو ستاسو | او دزړونو دهغوئ | اونۀ دى جائز | ستاسو دپاره | |
| اود هغوئ دزړونو دپاره ډيره پاکه طريقه ده | | | ..........او تاسو دپاره دا جائز نه دى | | چې |

[1] البزار:۲۲۵۱، دارقطنی:۲۱۸/۳، مجمع الزوائد:۹۵/۷،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ تُؤْذُوا | رَسُولَ اللهِ | وَلَآ أَنْ | تَنْكِحُوا | أَزْوَاجَهُ | |
| چې تکلیف اورسوئ | رسول دالله ته | اونه دا چې | تاسو په نکاح واخلئ | بيبيانې دهغه | |
| دالله ﷺ رسول ته تکلیف ورکړئ \| یا دا چې د هغه نه پس دهغه بیبیانو کښې چا سره چرې | | | | | |
| مِنْ بَعْدِهِ | أَبَدًا | إِنَّ ذٰلِكُمْ كَانَ | عِنْدَ اللهِ | عَظِيمًا | |
| روستو دهغه نه | هيڅكله | بیشکه دا کار (ستاسو دپاره) \| دې | په نز دالله | لويه ګناه | |
| نکاح اوکړئ \|..........................داخبره دالله ﷻ په نيز ډيره لويه ګناه ده | | | | | |
| إِنْ تُبْدُوا | شَيْئًا | أَوْ تُخْفُوهُ | فَإِنَّ اللهَ | كَانَ | بِكُلِّ شَيْءٍ |
| كه ښكاره كوئ تاسو | څه څيز | يا پټوئ هغه | پس بیشکه الله | دې | په هر څيز باندې |
| كه تاسو يوه خبره ښكاره كوئ او كه پټوئ ئې \| ............نو الله ﷻ په هر څيز ډير ښه عالم دې | | | | | |
| عَلِيمًا | | | | | |
| ښه عالم | | | | | |

**قوله تعالى:- يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ**

**د پردې د حکم نازلیدل اود پیغمبر ﷺ دکور احترام:-** په دې آيت كښې د پردې حكم دې اود شرعى آدابو او احكامو بيان دې. دحضرت عمر رضی الله عنه د قول مطابق چه كوم آياتونه نازل شوى دى په هغې كښې يودا هم دې. بخارى اومسلم شريف كښې دهغوى نه روايت دې درې خبرې ما اوكړې د كومومطابق چه الله رب العزت احكام نازل كړل. ماوئيل يارسول الله ﷺ كه تاسو مقام ابراهيم قبله جوړه كړئ نو به بهتره وى. نوالله تعالى هم دغه حكم اوفرمائيلو ﴿وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى ۭ وَعَهِدْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّاۗىِٕفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ﴾[1] ماوئيل يارسول الله ﷺ ماته خودابښه نه ښكارى چه هريوكس دې كورته ننغ راننوځى تاسو خپلو بيبيانوته د پردې حكم وركړئى نوښه به وى. نود الله ﷻ د طرف نه د پردې حكم نازل شو.كله چه دحضوراكرم ﷺ ازواج مطهراتو دغيرت د وجه نه څه وئيل اوريدل نوماوئيل په څه غروركښې مه پريوځئ كه حضوراكرم ﷺ تاسو پريږدى نو الله ﷻ به حضور ﷺ ته تاسو نه بهتر بيبيانې وركړى. نود قرآن پاك هم دا آيت نازل شو[2] په صحيح مسلم كښې يوځلورم موافقت هم موجوددې او هغه دبدر د قيديانوفيصله ده([3]) يوبل روايت كښې دى۵هجرى د ذى قعده مياشت كښې كله چه رسول الله ﷺ حضرت زينب بنت جحش رضی الله عنها سره نكاح اوكړه كومه نكاح چه الله ﷻ پخپله كړې وه هم هغه سحر باندې د پردې آيت نازل شو. بعضې حضرات وائى چه دا واقعه د ۳هجرى ده. والله اعلم.

**قوله تعالى:- وَلَا مُسْتَاْنِسِيْنَ لِحَدِيْثٍ ۭ**

**خوراك نه پس خبرو دپاره نه دى ايساريدل پكار-** صحيح بخارى كښې دى حضور ﷺ چه كله حضرت زينب بنت جحش رضی الله عنها سره نكاح اوكړه نوخلقو له ئى دعوت اوكړو نود خوراك څښاك نه پس په خبرو اتروكښې اخته شو.حضور ﷺ د پاسيدو تيارى هم اوكړه خوهغوى پانه سيدل دې كتلوسره حضور ﷺ

---

[1] البقرة:۱۲۵.

[2] صحيح بخارى كتاب التفسير سورة البقرة باب ﴿ واتخذوا من مقام ابراهيم مصلى﴾:۴۴۸۳، ترمذى:۲۹۵۹، احمد:۲۴/۱، ابن حبان: ۶۸۹۲.

[3] صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة باب من فضائل عمر رضی الله عنه:۲۳۹۹،

اودریدو.حضورﷺ سره څه خلق خوروان شوخوبیاهم دري کسان هم هلته ناست وو خبرې کولې. حضورﷺ چه کله اوکتل واپس شو نوهغوی هم هغه شان په خبروکښې اخته وو.حضورﷺ بیالاړو کله چه داخلق لاړل نوحضرت انس ﷺ حضوراکرم ﷺ ته خبرورکړو.نوبیاحضورﷺ کورته تشریف راوړو. حضرت انس ﷺ فرمائی چه ما هم تلل غوښتل نو حضورﷺ په خپل مینځ کښې اوزما په مینځ کښې پرده اوکړه اودا آیت نازل شو(۱) یوبل روایت کښې دی چه حضورنبی کریم ﷺ په دې موقعه باندې غوښه اوروټئی ورکړې وه اوحضرت انس ﷺ نی لیکلې وو چه خلق راوغواړه. خلق به راتلل خوړله به نی او واپس به تلل. کله چه یو هم داسې پاتې نهٔ شوکوم چه حضرت انس ﷺ راغوښتې وو نوحضورﷺ ته نی خبر ورکړو. حضور ﷺ اوفرمائیل چه اوس دسترخوان اوړدکړه. ټول خلق لاړل مګردرې کسان ناست په خبرو کښې لګیاوو. حضوراکرم ﷺ د دې ځایٔ نه لاړو اوحضرت عائشه ﷺ کره لاړو اووئی فرمائیل السلام علیکم یااهل بیت ورحمة الله وبرکاته. مور بی بی جواب ورکړو وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته اوفرمائی حضورﷺد بی بی نه خوشحاله خو ئې؟ نبي کریم ﷺ اوفرمائیل الله ﷻ دې تاله برکت درکړي. دغه شان حضورﷺ ټولو بیبیانوکره لاړو اوپه هریوځایٔ کښې هم داخبرې اوکړې. اوس چه کله واپس راغلو وئی کتل نوهغه صاحبان لاتراوسه پورې ناست خبرو کښې لګیا دی. په حضوراکرم ﷺ کښې شرم اوحیا اولحاظ ډیرزیات وو په دې وجه حضورﷺ هیڅ هم اونه فرمائیلې شواوبیا د حضرت عائشه ﷺ کمرې ته لاړو اوس پته نه لګی چه ماخبر ورکړو که هغه دریواړه پخپله لاړل نوحضورﷺ راغلو او په چوکاټ ئی قدم کیخودو سره پرده اوکړه اود پردې آیت نازل شو(۲)په یوروایت کښې د دریوکسانو په ځایٔ د دوو سړو ذکر دې(۳)ابن ابی حاتم کښې دی چه د حضور ﷺ په یوه نوې نکاح باندې حضرت ام سلیم ﷺ شیره جوړه کړه او په یوخانك کښې کیخوده او حضرت انس ﷺ ته نی اوفرمائیل چه داد الله ﷻ رسول ﷺ له یوسه اوورته اووایه چه دا لږه شان تحفه زمونږ د طرف نه قبوله کړئی اوزما سلام هم ورته وایه. هغه وخت خلق ووم هم په سختئی کښې. زه لاړم حضورﷺ ته مې د موربی بی سلام او پیغام اورسولو. نبی کریم ﷺ چه دا اوکتل نووئی فرمائیل ښه ده دا کیږده زه لاړم اود کور په یوګوټ کښې مې کیخوده. بیائی اوفرمائیل لاړشه اوفلانکې فلانکې راوغواړه. د ډیرخلقو نومونه نی واخستل او وئی فرمائیل چه دوی نه علاوه کوم مسلمان هم ملاوشی هغه راوغواړه. ماهم داسې اوکړه چه څوك هم ملاو شو هغه مې رسول الله ﷺ کره د خوراك د پاره راغوښتل. چه واپس شوم نو اومې کتل ټول کور حجره اوبیټك د خلقو نه ډك وو. تقریبًا درې سوه کسان وو. اوس ماته حضورﷺ اوفرمائیل لاړشه هغه پیاله راوړه ماچه راوړه نوحضورﷺ پرې خپل لاس مبارك کیخودو اودعائی اوکړه اوچه الله ﷻ څه غوښتل دحضورﷺ د ژبې مبارکې نه ئی اداکړل. بیااوفرمائیل لس لس کسان کینوئی بسم الله ونیلو سره دخپلې خپلې مخې نه خوراك شروع کړئی. دغه شان خوراك شروع شو اوټولو اوخوړله. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل پیاله راوچته کړه. حضرت انس ﷺ فرمائی چه ما پیاله راوچته کړه نو زه دانه شم ونیلې چه اول په دې کښې زیاته وه که اوس؟ یوڅو کسان دحضورﷺ په کورکښې ناست وو خبرې کولې اوام المؤمنین دیوال طرف ته مخ کړې ناسته وه. د هغوی د دومره وخت پورې نه اخواکیدل په حضورﷺ باندې ګران تیریدل خود شرم اولحاظ د وجه نه نی څه نه ونیل که هغوی ته د دې خبرې علم شوې وو نوهغوی به وتلې وو خو په بې خیالئی کښې ناست وو. حضورﷺ د کور نه اووتلو اوبیبیانوکوټوته لاړو چه کله واپس شو وئی کتل هغوی هم هغه شان ناست وو. نواوس خودوی ته هم پته اولګیده پښیمانه

---

۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله ﴿لاتدخلوا بیوت النبی الا....﴾:۴۷۹۱،صحیح مسلم:۱۴۲۸.
۲) صحیح بخاری کتاب التفسیرسورة الاحزاب باب قوله ﴿لاتدخلوابیوت النبی‌الا....﴾:۴۷۹۳.
۳) صحیح بخاری حواله سابق:۴۷۹۴.

شو او زر اووتل. حضور ﷺ دننه لاړو اوپرده ئې زوړند کړه. زه هم په حجره کښې ووم چه دا ایت نازل شو حضور ﷺ د دې تلاوت کولوسره بهر راغلو. د ټولونه اول دا آیت ښځو واوریدو اود ټولونه اول د دې اوریدونکې هم زه ووم(۱) اول دحضرت زینب رضی الله عنها پیغام اوړلوروایت په آیت ﴿ فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا ۚ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ﴾(۲) په تفسیر کښې تیرشوې دې. د دې په آخره کښې په بعضې روایاتو کښې داهم دی چه بیاخلقوته نصیحت اوکړې شو. اودهاشم په دې حدیث کښې د دې آیت بیان هم دې. (۳)

ابن جریرکښې دی د شپې وخت کښې به ازواج مطهرات د قضائی حاجت د پاره صحرا ته تلې. د حضرت عمر رضی الله عنه داخوښ نه ووفرمائیل به ئې چه دوی داسې مه پریږدئې. حضور ﷺ په دې باندې توجه نه ورکوله. یوځل حضرت سوده بنت زمعه رضی الله عنها اووتله. دفاروق أعظم رضی الله عنه داخوښه وه چه په څه طریقه باندې دا ازواج مطهرات دا وتل بندکړی. ددې دپاره هغوی دقداوقامت نه اوپیژندله اوبه اوچت آواز ئې اووئیل مونږ اې سوده ته اوپیژندلې. دې نه پس دپردې آیاتونه نازل شو. پدې روایت کښې هم داسې دی خومشهوره دا ده چه داوقعه د پردې د نازلیدلونه وړاندې ده.

مسنداحمد کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه د پردې د حکم نه پس حضرت سوده رضی الله عنها وتلې وه الخ. په دې کښې داهم دی چه هم هغه وخت راواپس شوه. نبی کریم ﷺ د ماښام خوراك کولو په لاس مبارك کښې یو هډوکې وو. راغله واقعه ئې بیان کړه هم هغه وخت وحی نازل شوه چه کله ختمه شوه نوهم هغه وخت پورې دا هډوکې په لاس مبارك کښې وو لاواوس ئې پریخې هم نه وو چه حضور ﷺ اوفرمائیل الله ﷻ تاسو له ستاسو د ضرورت د پاره د بهروتلواجازت درکوی(۴) په آیت کښې الله ﷻ مسلمانان د دې عادت نه منع کوی کوم چه په جاهلیت کښې اود اسلام په شروع کښې په خلقوکښې وو چه بې اجازته به د خلقو کورونوته تلل. نوالله تعالی د دې امت اکرام کولوسره دوی ته دا آدب ښائی. په یوحدیث کښې هم دا مضمون دې چه خبردار ښځوله مه ځئی(۵) بیاالله تعالی هغوی مستثنی کړې ځائنه چه اجازت ورکړې شی. وئی فرمائیل تاسو ته چه اجازت درکړې شی د خوراك طرف ته نو تاسو د دې د تیاری په انتظارکښې مه اوسیږئی. مجاهد اوقتاده رحمهم الله فرمائی چه د خوراك د پخیدو اوتیاریدو په وخت کښې وررسه. (۶) کله چه پوهه شی خوراك تیارشو نو ورننوځئ دا خصلت د الله ﷻ خوښ نه دې. دا دلیل دې د طفیلی جوړیدو په حرمت. امام خطیب بغدادی رحمه الله ددې په مذمت کښې پوره یو کتاب لیکلې دې. بیافرمائی چه کله راوغوښتې شې نو ځه او کله چه اوخورې نو اوځه. صحیح مسلم شریف کښې دی چه په تاسو کښې کله تاسو ستاسو رور راوغواړی نود هغه دعوت قبلول پکاردی که د نکاح وی که د بل څه(۷) یوبل حدیث کښې دی که ماته د یوې نوکې دعوت هم راکړې شو نوزه به ئې قبول کړم. د دعوت په دستورکښې داهم بیان اوفرمائیل کله چه اوخورې نو کوربه کره پرلت مه غزوه او

۱) صحیح بخاری کتاب النکاح باب الهدیة للعروس:۵۱۶۳،صحیح مسلم:۱۴۲۸،ترمذی:۳۲۱۸.

۲) ۳۳/الاحزاب:۳۷. الخ

۳) صحیح مسلم کتاب النکاح باب زواج زینب بنت جحش رضی‌الله عنها ونزول الحجاب...:۱۴۲۸.

۴) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله تعالی (لاتدخلوابیوت النبی):۴۷۹۵، صحیح مسلم:۲۱۷۰، احمد:۵۶/۶، ابویعلی:۴۴۳۳.

۵) صحیح بخاری کتاب النکاح باب لایخلون رجل بامراة الاذو محرم.....:۵۲۳۲، صحیح مسلم:۲۱۷۲، ترمذی:۱۱۷۱، احمد:۱۴۹/۴، ابن حبان:۵۵۸۸.

۶) الطبری:۳۰۶/۲۰.

۷) صحیح مسلم کتاب النکاح باب الامر باجابة الداعی الی دعوة: ۱۴۲۹.

مه کینه بلکه د هغه ځایٔ نه ځه(١) په خبروکښې مه مشغول کیږئ لکه څنګه چه دې دریو کسانو کړې وو اوحضورﷺ ته تکلیف ووخود شرم اولحاظ د وجه نه نی څه نه شوونیلې. دغه شان دا مطلب هم دې چه ستاسو د بغیراجازت نه د حضورﷺ کورته تلل هم په هغوی باندې سخت پریوځی خوهغوی د شرم اوحیا د وجه تاسو ته څه نه شی وئیلې. الله ﷻ تاسو ته صفا صفا بیان فرمانی چه اوس داسې مه کونی. هغه حق ته د حکم ورکولونه حیا نه کوی.تاسوله چه څنګه بغیرد اجازت نه دحضورﷺ دبیبیانو کره تلل منع دی دغه شان د هغوی طرف ته سترګې اوچتول اوکتل هم حرام دی. که تاسو د هغوی نه څه ضروری څیز اخستل یا ورکول وی نو د پردې نه اخوا دې وی. ابن ابی حاتم کښې دی نبی کریمﷺ یو ځل شیره خوړله حضرت عمرﷺ نی هم راوغوښتلو هغوی هم ناست وو خوړله نی.عائشه صدیقه ﷺ د اول نه په خوراك کښې شریکه وه. حضرت عمرﷺ د ازواج مطهرات د پردې په خیال کښې ووېه خوراك کښې نی ګوتوسره ګوتې اولګیدې نو ناخاپه نی د خُلې نه اووتل چه افسوس زما منلې شوې وې اوپرده کولې شوه نو د چا نظر به هم نه پریوتلو. (٢) هم هغه وخت د پردې حکم نازل شو. بیا د پردې تعریف بیانولې شی چه د ښځو اوسړو د زړونود پاکوالی ذریعه ده. که یوسړې د حضورﷺ د یوې بی بی سره د هغوی نه پس د نکاح کولو اراده کړې وه نو په دې آیت کښې دا حرام اوګرځولې شو څکه چه د حضور ﷺ بیبیانې په ژوند کښې او په جنت کښې دهغوی بیبیانې دی اود ټولومسلمانانوهغه میندې دی په دې وجه دمسلمانانو د هغوی سره نکاح کول حرام دی.داحکم د هغه بیبیانود پاره دې چه د حضورﷺ د وفات په وخت کښې د هغوی په کور کښې وې. د ټولو په نیز اجماعًا دی خو چه کومې بی بی نه حضوراکرمﷺ په ژوند کښې طلاق ورکړې اود هغې نه جدا شوې دی نو هغې سره څوك نکاح کولې شی که نه؟ په دې کښې دوه مذهبه دی یودا چه دخول نه وی شوی او طلاق نی ورکړې وی هغې سره بل څوك نکاح کولې شی. قیله بنت اشعث بن قیس د حضوراکرمﷺ په ملکیت کښې راغلې وه د هغوی د وفات نه پس هغې د عکرمهﷺبن ابوجهل سره نکاح اوکړه.

په حضرت ابوبکرﷺ باندې دا ښه نه لګیدل نو حضرت عمرﷺ پوهه کړو چه اې خلیفه رسول اللهﷺ دا دحضورﷺ بی بی نه وه نه دې ته حضوراکرمﷺ اختیار ورکړې نه نی دې ته د پردې حکم ورکړې اود دې د قوم ردت د دې د ردت په وجه الله ﷻ دا د رسول اللهﷺ نه بری کړه دې اوریدو سره د حضرت صدیق اکبرﷺ تسلی اوشوه. نوددې دواړو خبرو بدی بیانولوسره فرمانی رسول اللهﷺ ته تکلیف ورکول اود هغه بیبیانوسره د هغوی د وفات نه پس نکاح کول دا دواړه ګناهونه د الله ﷻ په نیز ډیرې لونې دی. ستاسو پټې اوښکاره خبرې ټولې الله ﷻ ته ښکاره دی. د هغه نه وړوکی نه وړوکې څیز هم پټ نه دې. د سترګوخیانت اود زړه پټې شوې خبرې اود زړه ارادې هغه پیژنی.

| | | |
|---|---|---|
| لَا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ | فِيْٓ اٰبَآئِهِنَّ | وَلَآ اَبْنَآئِهِنَّ |
| نشته ګناه په هغویٔ باندې | په کورته راتلو دپلرونو دهغویٔ کښې | اونهٔ د خامنو دهغویٔ کښې |
| | دپیغمبر بیبیانو دپاره خپلو پلارانوته | او خامنو ته |
| وَلَآ اِخْوَانِهِنَّ | وَلَآ اَبْنَآءِ اِخْوَانِهِنَّ | وَلَآ اَبْنَآءِ اَخَوٰتِهِنَّ |
| اونهٔ د رونړو دهغویٔ کښې | اونهٔ د خامنو د وروڼو دهغویٔ کښې | اونهٔ د خامنو دخویندودهغویٔ کښې |
| او رونړو ته | او وریرو (د رور خامنو)ته | او خوریونو (د خور خامنو) ته |

(١) صحیح بخاری کتاب النکاح باب من اجاب الی کراع:۵۱۸۷، احمد:۴۲۴/۲، ابن حبان:۵۲۹۱.

(٢) السنن الکبری:۱۱۴۱۹.

وَلَا نِسَآئِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ
اونهٔ د ښځو دميل ملاپ دهغوئ كښې | اونهٔ د هغه وينځو كښې | چې مالكان شوي وي |
اوخپلو (مسلمانانو) زنانوته ..................او خپلو وينځو ته (په مخامخ كيدو باندې) هيڅ ګناه نشته
اَيْمَانُهُنَّ وَاتَّقِيْنَ اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا
ښې لاسونه دهغوئ | اواويريږئ داللّه نه | بيشكه الله | دې په هر څيز باندې | حاضر (نظرلرونكي) |
اوتاسو دالله ﷻ نه ويريږئ| ..................الله ﷻ په هره څيز باندې ګواه دې
اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ
بيشكه چې الله | او فرښتې دهغه | درود (يعني رحمت) ليږي | په نبي ﷺ باندې| اے هغه كسانو |
بيشكه الله اوددهٔ فرښتې په نبي باندې درودونه وائي(د الله درود رحمت اود فرشتو درود دعا ده) اې
اٰمَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا
چې ايمان مو راوړې دې | درود اوليږئ | په هغه باندې| او سلام وايئ| په سلام ونيلو سره |
د ايمان خاوندانو ! تاسو هم په دهٔ باندې درود او سلام وايي

**قوله تعالى:- لَاجُنَاحَ عَلَيْهِنَّ**

**د چانه چه د پردې نه ګولو اجازت دې** :- پورتنوآياتونوكښې د پردوخلقونه دپردې كولوحكم شوې وود دې دپاره چه دكومو نيزدې خپلوانو نه چه پرده نه وه د هغې بيان په دې آيت كښې كولې شي. په سورت نور كښې هم داسې بيان شوې چه ښځې دې خپل ښائست نه ښكاره كوي خوخپلوخاوندانوته پلارانوته سخرانوته ځامنو ته د خاوندځامنوته رونړو وريرونو خوريانوته ښځوته اوهغوى دچا ملكيت چه د دوى په لاسونو كښې وى د هغوى په وړاندې دا كاركونكى غيرخواهش مند سړو ياماشومانو په وړاندې ددې پوره تفسير د دې آيت لاندې تيرشوې دې. د تره اوماما ذكر دلته ځكه اونه كړې شو چه ممكن دى هغوى د خپلو ځامنوپه وړاندې د دوى صفتونه بيان كړى. حضرت شعبي اوحضرت قتاده رحمه الله خود دې دواړو په وړاندې لوپټه كوزول مكروه ګنړله.(١) ﴿نسائهن﴾ نه مرادمؤمنانې ښځې دى. د ماتحت نه مراد وينځې غلامان دى لكه څنګه چه اول د دې بيان تيرشوې دې اواحاديث هم مونږ هم هلته نقل كړې دى.سعيدبن مسيب رحمه الله فرمائى دې نه مراد صرف هم وينځې دى.دالله ﷻ نه ويريږئى اوهغه په هرڅيز باندې شاهددې.پټ ښكاره هرڅه هغه ته معلوم دى.دهغه موجوداوحاضرويره لرنى اودهغه لحاظ كوئى.

**قوله تعالى:- اِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰٓئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ**

**دَ آيت دَ درود اوسلام معانى او په انبياوُ دَالله ﷻ صلاة**:- په صحيح بخارى كښې د حضرت ابوالعاليه رحمه الله نه روايت دې دالله تعالى په خپل نبي ﷺ باندې درودليګل اود خپلو فرښتو په وړاندې دهغه تعريف او صفت بيانول دى اود فرښتو درود د حضورﷺ د پاره دعاكول دى. ابن عباس رضی الله عنه فرمائى لكه د بركت دعا(٢) داكثرو اهل علم قول دې چه د الله ﷻ درود رحمت دې د فرښتو درودواستغفاردې(٣) عطاء رحمه الله

(١) الطبرى: ٢٠/٣١٨.
(٢) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الاحزاب باب قوله ﴿ان الله وملائكته يصلون على النبى....﴾:تعليقًا قبل حديث:٤٧٩٧.
(٣) ترمذى كتاب الوترباب ماجاء فى فضل الصلاة على النبى ﷺ تحت رقم:٤٨٥.

نرمائی د الله ﷻ درود سبوح قدوس سبقت رحمتی غضبی دی. د دې ایت مبارك نه مقصد دا دې چه د حضورﷺ قدر اومنزلت عزت اومرتبه د خلقو په نظر کښې ښکاره شي اوهغوی ته پته اولګی چه پخپله الله ﷻ دحضورﷺ تعریف کوی اودهغه فرښتې هم په حضورﷺباندې درودواوسلام رالیګی. د ملاءعلی دې خبر ورکولوسره اوس د زمکې والا ته حکم کولې شي چه تاسو هم په حضورﷺ باندې درود اوسلام لیګئی دې دپاره چه د بره مخلوق اوښکته مخلوق په دې باندې اجماع اوشی. د حضرت موسی ؈ نه بنی اسرائیلوتپوس کړې ووچه آیا الله ﷻ په تاباندې صلوة رالیګی نوالله تعالی وحی راولیګله چه دوی ته اووایه چه اوالله تعالی په خپلو انبیاءکرامو او رسولانوباندې خپل رحمت رالیګی. د دې په شان په دې آیت کښې هم ارشاددې.

**الله ﷻ په مؤمنانو باندې هم رحمت لیږی:-** په دویم آیت کښې الله ﷻ خبر ورکړې دې چه هم دغه رحمت الله ﷻ په خپلو مؤمنانوبندیګانو باندې هم رالیګی. ارشاددې ﴿هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَائِكَتُهُ لِيُخْرِجَكُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ۚ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا ۝ تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهُ سَلَامٌ ۚ وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْرًا كَرِيمًا ۝﴾ (۱)یعنی اې ایماندارو تاسو دالله ﷻ ذکرپه کثرت سره کوئی اوسحرماښام دهغه تسبیح بیانوئی هغه پخپله هم په تاسوباندې درود رالیګی اودهغه فرښتې هم.یوبل آیت کښې دی ﴿ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ ۝ ﴾ (۲) صبرکونکوته زیرې ورکړئی هغوی ته چه کله څه مصیبت اورسی نو هغوی ﴿ إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ۝ ﴾ لولی. په هغوی باندې دهغوی درب د طرف نه درود رالیګلې کیږی.حدیث شریف کښې دی الله ﷻاودهغه فرښتې دصفونو په ښی طرف والاباندې صلوة رالیګی. (۳)

**د حضور ﷺ صلاة په مؤمنانو:-** په دویم حدیث کښې دحضوراکرم ﷺ د یوسړی دپاره دادعا ذکر ده یاالله په آل ابی اوفی باندې خپل رحمت نازل کړه(۴)دجابرؓ بی بی حضور اکرم ﷺ ته درخواست اوکړو چه زمادپاره اوزما دخاوند دپاره صلاة راولیګئی نوحضورﷺ اوفرمائیل الله ﷻ دې په تاباندې او ستا په خاوندباندې درود رانازل کړی. (۵)

**په رسول کریم ﷺ باندې درود او الفاظ د احادیثو په رڼا کښې:-** د درودشریف دبیان ډیرزیات احادیث دی دکومونه چه مونږیوڅو دلته روایت کوو.﴿والله المستعان﴾ بخاری شریف کښې دی هغوی ته اووئیلې شویارسول الله ﷺ مونږ تاسو ته سلام کولوباندې خو پوهیږو د صلوة څه طریقه ده؟ حضورﷺ په التحیات کښې دواړه درود شریف اوخودل خوپه دواړو کښې د وعلی آل ابراهیم لفظ نشته دی(۶) په یوبل روایت کښې دعلی ابراهیم لفظ نشته دې(۷)په یوبل روایت کښې خو اولنې درود په پوره الفاظو سره دې اودویم په څه بدلون سره دې.عبدالرحمن بن ابی لیلی رحمه الله په آخره کښې وعلینا معهم هم وئیلو.(۸)

---

(۱) ۳۳/الاحزاب:۴۳.

(۲) ۲/البقرة:۱۵۵. الخ

(۳) ابوداوٗد کتاب الصلاة باب من يستحب ان يلی الامام فی الصف وكراهية التاخر:٦٧٦وسنده حسن، ابن ماجه:۱۰۰۵، ابن حبان:۲۱٦۰.

(۴) صحیح بخاری کتاب الزکاة باب صلاة الامام ودعائه لصاحب الصدقة....:۱۴۹۷، صحیح مسلم:۱۰۷۸، ابوداوٗد: ۱۵۹۰، احمد:۳۵۳/۴، مسندالطیالسی:۸۱۹.

(۵) ابوداوٗد کتاب الوتر باب الصلاة علی غیرالنبی:۱۵۳۳وسنده صحیح، احمد: ۱۹۸/۳، دارمی:۲۴/۱،ابن حبان:۹۱٦، بیهقی:۱۵۳/۲.

(٦) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله ﴿ان الله وملائکته یصلون علی النبی....﴾:۴۷۹۷، احمد:۲۴۴/۴، صحیح مسلم:۴۰٦.

(۷) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب الصلاة علی النبی بعد التشهد: ۴۰۵.

(۸) ترمذی کتاب الوتر باب ماجاء فی صفة الصلاة علی النبی ﷺ:۴۸۳وهوصحیح

**د سلام الفاظ:** دکوم سلام چه دلته ذکر دې هغه په التحیات کښې ((السلام علیك ایها النبی ورحمة الله وبرکاته)) دې داالتحیات به نی دقرآن پاك دسورت په شان خودلو. او په یوروایت کښې ((اللهم صل علی محمد عبدك ورسولك)) هم دې اوپه روستونی درود کښې لږ شان بدلون دې. (۱) په یوبل روایت کښې د درود الفاظ دادی ((اللهم صل علی محمد وازواجه وذریته کما صلیت علی ال ابراهیم وبارك علی محمد وازواجه وذریته کما بارکت علی ال ابراهیم انك حمید مجید)) (۲) په بعضې روایتونو کښې د علی ابراهیم نه پس فی العالمین لفظ هم دې (۳) په یو روایت کښې سوال کښې دالفظ هم دې چه مونږ درود په مونځ کښې څنګه اولولو؟ (۴)

**تشهد کښې د درو حکم او په دې کښې اختلاف:-** دامام شافعی رحمه الله مذهب دا دې چه د مانځه په آخری تشهد کښې که څا درود اونه لوستلو نود هغه مونځ نه صحیح کیږی د درود لوستل دغه ځائ کښې واجب دی. بعضې متاخرینویه دې مسئله کښې د امام صاحب رحمه الله رد کړې دې ونیلې دی چه داصرف د هغوی قول دې اود دې خلاف اجماع ده. حالانکه داغلط دی د صحابه کرامو رضی الله عنهم یوې ډلې هم دا ونیلی دی مثلاً ابن مسعود رضی الله عنه حضرت ابومسعود بدری رضی الله عنه اوحضرت جابربن عبد الله رضی الله عنه په تابعینو کښې هم د دې مذهب خلق تیرشوی دی لکه شعبی ابوجعفر باقر مقاتل بن حیان رحمهم الله وغیره اود شافعیه خود ټولو هم دا مذهب دې. د امام احمد رحمه الله هم آخری قول دا دې لکه څنګه چه د ابوزرعه دمشقی بیان دې اسحاق بن راهویه امام محمد بن ابراهیم فقیه رحمهم الله هم دا وائی. بلکه بعضې حنبلی ائمه هم ونیلی دی چه کم نه کم صلی الله علیه وسلم خو په مانځه کښې ونیل واجب دی. لکه چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په سوال باندې حضورپاك ﷺ تعلیم ورکړو اوزمونږ بعضې ملګرو هم د حضور ﷺ په آل باندې درود لیګل هم واجب ګڼرلی. غرض دا چه په مانځه کښې د درود واجب کیدلو قول ډیر ښکاره دې اوپه حدیث کښې د دې دلیل هم موجود دې. په سلفواوخلفوکښې د امام شافعی رحمه الله نه علاوه ائمه هم د دې قائل دی نودا وینا کول په یو شان سره هم صحیح نه ده چه هم د امام صاحب دا قول دې او د دې خلاف اجماع ده د دې تائید دې صحیح حدیث نه هم کیږی کوم چه په مسنداحمد کښې ترمذی ابو داؤد نسائی ابن خزیمه وغیره کښې دې چه حضوراکرم ﷺ اوریدل چه یوسړی بغیرد الله ﷻ د حمداوثنا نه او بغیر په حضوراکرم ﷺ باندې د درود شریف ونیلو نه په خپل مونځ کښې دعااوکړه نوحضور ﷺ اوفرمائیل دې سړی ډیره تندی اوکړه. بیائی دې راوغوښتو ونی فرمائیل چه کله تاسو کښې څوك مونځ کوی نواول دالله تعالی تعریفونه بیانونی بیا درود لولئی اوبیاچه کوم غوارئی دعا کوئی (۵) ابن ماجه کښې دی چه د چا اودس نه وی د هغه مونځ نشته اوڅوك چه په اودس کښې بسم الله اونه وائی د هغه اودس نشته. څوك چه په نبی کریم ﷺ باندې درود اونه لولی د هغه مونځ نشته (۶) څوك چه انصارو سره مینه اونه ساتی د هغه مونځ نشته. خود دې په سند کښې عبدالمهیمن راوی متروك دې. په طبرانی کښې دا روایت د هغه د رور نه نقل دې. خو په دې کښې هم نظردې اومعروف روایت هم اولنې دې. والله اعلم. مسنداحمد کښې دی چه مونږ اوونیل حضور ﷺ مونږ په تاسو باندې سلام وانیلوباندې

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الاحزاب باب قوله تعالی ﴿ان الله وملائکته یصلون علی النبی﴾ ۴۷۹۸، ابن ماجه:۹۰۳.

(۲) صحیح بخاری کتاب احادیث الانبیاء باب نمبر:۱۰ حدیث:۳۳٦۹، صحیح مسلم۴۰۷، ابوداؤد ۹۷۹، ابن ماجه:۹۰۵.

(۳) صحیح مسلم کتاب الصلاة باب الصلاة علی النبی ﷺ بعد التشهد:۴۰۵.

(۴) ابوداؤد کتاب الصلاة باب الصلاة علی النبی بعدالتشهد:۹۸۱وهوصحیح، احمد:۱۱۹/۴، ابن خزیمه:۷۱۱، ابن حبان:۱۹۵۹، حاکم: ۲٦۸/۱.

(۵) ابوداؤد کتاب الوتر باب الدعاء: ۱۴۸۱ وسنده حسن، ترمذی:۳۴۷۷، نسائی۱۲۸۵، احمد:۱۸/٦، ابن خزیمه:۷۰۹،

(۶) ابن ماجه کتاب الطهارة باب ماجاء فی التسمیة فی الوضوء ۴۰۰، دارقطنی:۳۵۵۱، حاکم: ۲٦۹/۱، بیهقی:۳۷۹/۲.



خو پوهيږو درود راته اوښايئي. نوحضوراكرم ﷺ اوفرمائيل چه داسې وائې ((اللهم اجعل صلواتك ورحمتك وبركاتك على محمد وعلى ال محمد كما جعلتها على ابراهيم وال ابراهيم انك حميد مجيد))[1] د دې يوراوى ابوداؤد اعمى د كوم نوم چه نفيع بن حارث دې متروك دې. د حضرت على ؓ نه خلقو ته دا دعاخو دُل هم نقل دى.

((اللهم داحى المدحوات وبارى المسموكات وجبار القلوب على فطرتها شقيها وسعيدها اجعل شرائف صلوتك ونواحى بركاتك وفضائل الائك على محمد عبدك ورسولك الفاتح لما اغلق والخاتم لما سبق والمعلن الحق بالحق والدامغ لجيشات الاباطيل كما حمل فاضطلع بامرك بطاعتك مستوفزا فى مرضاتك غيرنكل فى قدم ولا وهن فى عزم واعيا لوحيك حافظا لعهدك ماضيا على نفاذ امرك حتى اورى قبسا لقابس الاء الله تصل باهله اسباب به هديت القلوب بعد خوضات الفتن والاثم وابهج موضحات الاعلام ونائرات الاحكام ومنيرات الاسلام فهو امينك المامون خازن علمك المخزون وشهيدك يوم الدين بعيثك نعمة ورسولك بالحق رحمة اللهم افسح له فى عدنك واجزه مضاعفات الخير من فضلك له مهنات غير مكدرات من فوز ثوابك المعلول وجزيل عطائك المحلول اللهم اعل على بناء الناس بناءه واكرم مثواه لديك ونزله واتمم له نوره واجره من ابتعاثك له مقبول الشهادة مرضى المقالة ذامنطق عدل وخطة فصل وحجة وبرهان عظيم))

خو ددې سندتيك نه دې. زمونږ شيخ ابوالحجاج مزى فرمائي چې ددې يوسلامه كندى نه معروف دې او نه د ده ملاقات د حضرت على ؓ سره ثابت دې. ابن ماجه كښې دى عبدالله بن مسعود ؓ فرمائي كله چه تاسو په رسول الله ﷺ باندې درودشريف وائې نوډير ښكلى درود شريف وائې ډير ممكن دى چه ستاسو دا درود شريف حضورﷺ ته پيش كړې شى. خلقو ونيل چه بيا تاسو مونږ ته څه داسې درود اوښايئي هغوى اوفرمائيل دا بيترددې داسې وائې ((اللهم اجعل صلوتك ورحمتك وبركتك على سيد المرسلين وامام المتقين وخاتم النبيين محمد عبدك ورسولك امام الخير وقائد الخير ورسول الرحمة ابعثه مقاما محمودا يغبطه الاولون والاخرون)) ددې نه پس دالتحيات دواړه درو شريف لول[2]دا روايت هم موقوف دې. د ابن جرير په يو روايت كښې دى حضرت يونس بن حباب ؒ د خپل فارس په يوه خطبه كښې د دې آيت تلاوت اوكړو بيانى د خلقو د درود د طريقې د سوال بيان اوكړو دحضوراكرم ﷺ په جواب كښې ((وارحم محمدا وال محمد كما رحمت ال ابراهيم)) نى هم بيان كړو. ددې نه داهم استدلال كړې شوې دې چه د هغوى د باره د رحم دعا هم ده. د جمهورو هم دا مذهب دې. د دې نور تائيدد دې حديث نه هم كيږى په كوم كښې چه دى يواعرابى په خپله دعا كښې ونيلې وو اې الله ﷻ په مابانديې اوپه محمدرسول الله ﷺ باندې رحم اوكړه اومونږ سره په نور چا باندې رحم مه كوه نو حضورﷺ اوفرمائيل چه تا خوډير كولاوخيز راتنګ كړو.[3] قاضى عياض ؒ د جمهورمالكيه نه د دې عدم جواز نقل كړې دې. ابومحمدابن ابوزيد ؒ هم ددې جواز طرف ته تلې دې.دنبى كريم ﷺ ارشاد دې چه تركومې څوك په مابانديې درود رالېګى نوترهغه وخته پورې فرښتې هم دهغه د پاره د رحم دعاكوى اوتاسوته اختياردې چه كمې كوئى كه زياتې[4] رسول الله ﷺ فرمائى دټولونه اوچت به ماسره د قيامت په ورځ هغه وى چه د ټولونه زيات په مادرود وائى.[5]

ارشاد دې چه څوك په مايوخل درود راوليګى الله ﷻ په هغه باندې لس خپل رحمتونه راليګى. په دې يوسړى اوونيل بيا خو به زه د خپلې دعا نيم وخت هم په درود شريف كښې تيروم. ونى فرمائيل چه

---

[1] احمد:۵/۳۵۳
[2] ابن ماجه كتاب اقامة الصلوات باب الصلاة على النبى ﷺ:۹۰٦،
[3] صحيح بخارى كتاب الادب باب رحمة الناس والبهايم: ٦۰۱۰، ابوداؤد: ۳۸۰، ترمذى:۱٤۸، احمد:۲/۲۳۹،
[4] ابن ماجه كتاب اقامة الصلوت باب الصلاة على النبى ﷺ:۹۰۷،
[5] ترمذى كتاب الوتر باب ماجاء فى فضل الصلاة على النبى ﷺ:٤۸٤ وسنده حسن، التاريخ الكبير:۵/۱۷۷،ابن حبان:۹۱۱.

ځنګه ستا مرضی وی. هغه ونیل چه بیاخو به زه دریمه حصه کوم؟ حضورﷺ اوفرمائیل که ته غواړې نو. هغه بیا ونیل چه زه خوخپل ټول وخت هم د دې د پاره کوم. ونی فرمائیل دې وخت کښې به تاالله ﷻ د دین اودنیادغم نه خلاص کړی اوستاګناهونه به معاف کړی. د ابی بن کعب ؓ بیان دې چه د نیمې شپې وخت کښې به حضورﷺ بهر وتلو اوفرمائیل به نی خوزونکې راتلونکې دې اودې پسې شاشاته لګیدونکې هم دې. حضرت ابی ؓ یوځل اوونیل یارسول الله ﷺ زه د شپې څه مونځ کوم اود دې نیمه حصه په درودشریف کښې تیروم حضورﷺ اوفرمائیل نیمه حصه هغه ونیل چه نیمه نی کړم که دریمه نی کړم؟ ونی ونیل چه ښه ده زه به پوره وخت په دې کښې تیروم. رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه بیاخو به الله ﷻ ستا ټول ګناهونه معاف کړی. (۱)

ددې روایت یوبل سندهم دې چه دویمه حصه شپه تیریدو نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل اې خلقو الله ﷻ یادکړنی اې خلقودالله ﷻ ذکراوکړنی. ګورنی رچونکې راروان دې مرګ خپل خانسره ټول مصیبتونه آفتونه راروان کړی راځی. مرګ خپل خان سره ټول څیزونه راوړی. ابی ؓ اوونیل یارسول الله ﷺ زه به تاسو باندې په کثرت سره درود وایم نوپه دې کښې څومره وخت تیرکړم. حضورﷺ اوفرمائیل چه څومره ته غواړې. ونیل څلورمه حصه؟ ونی فرمائیل چه څومره غواړې زیاته کړې نو نوره بهتره ده. ونیل نیم؟ نوهم دا جواب نی ورکړو. تپوس نی اوکړو دویمه حصه؟ نوهم دا جواب ملاوشو. ونیل چه بس زه هم ټول وخت په دې کښې تیروم. ونی فرمائیل چه بیاخو به الله ﷻ تا دټول وهم اوغم نه بچ کړی اوستا ګناهونه به معاف کړی(۲)یوسړی حضورﷺ ته اوونیل که زه خپل ټول صلاة هم په تاسوکړم نو؟حضورﷺ اوفرمائیل د دنیااوآخرت ټول مقصدونه به دې پوره شی(۳)حضرت عبدالرحمن بن عوف ؓ فرمانی حضوراکرم ﷺ یوځل د کورنه اووتلوزه ورسره ووم.حضورﷺ د کهجورو یوباغ ته لاړو اوهلته په سجده راپریوتلو دومره اوږده سجده نی اوکړه اودومره وخت نی اولګولو چه زه خو اوویریدلم چه روح ترې لاړو.نیزدې لاړم اومې کتل نو حضورﷺ سرراوچت کړو مانه نی تپوس اوکړو څه خبره ده؟ ماخپل حالت ښکاره کړو ونی فرمائیل خبره داوه چه حضرت جبرائیل ؑ ماله راغلو اوماته نی اوونیل زه تاته زیرې اوروم الله ﷻ رب العزت فرمانی څوک چه په تاباندې درود لیګی زه به هم په هغه باندې درود لیګم او څوک چه په تا باندې سلام رالیګی زه به هم په هغه باندې سلام ورلیګم. (۴)

یوبل روایت کښې دی چه دا سجده په دې امرباندې دالله ﷻ په شکریه باندې وه(۵)یوځل حضور اکرم ﷺ دخپل څه کارد پاره اووتلوهیڅ څوک نه وو چه ورسره تلې وې نوعمر ؓ په تندنی سره شاشاته لاړو. ونی کتل چه حضورﷺ په سجده کښې دې نو لرې لاړو اودریدو.حضورﷺ سر اوچت کړواوهغه طرف ته نی اوکتل ونی فرمائیل تادا ډیرښه اوکړه چه زه دې په سجده کښې اولیدم اولرې لاړې.واوره ماله جبرائیل ؑ راغلوونی فرمائیل ستاپه امت کښې چه څوک یوځل په تا باندې درود اووائی الله ﷻ به په هغه باندې لس رحمتونه راولیګی. اود هغه به لس درجې اوچتې کړی. (۶)

یوځل حضورﷺخپلوصحابه کراموله راغلو.دمخ مبارک نه نی خوشحالی ښکاریده. صحابه کرامو ؓ د سبب تپوس اوکړو نوونی فرمائیل یوې فرښتې ماله دا زیرې راکړو چه زما امتی کله په ما باندې درود

---

(۱) فضل الصلاة علی النبی ﷺ:۱۴

(۲) ترمذی کتاب صفة القیامة باب فی الترغیب فی ذکر الله وذکر الموت......: ۲٤۵۷، احمد:۱۳٦/۵، حاکم:۵۱۳/۲،

(۳) احمد:۱۳٦/۵

(۴) احمد: ۱۹۱/۱ حاکم:۳۳۳/۲،مجمع الزوائد:۲۸۷/۲.

(۵) احمد:۱۹۱/۱.

(۶) المعجم الصغیر: ۹۰/۲

اولولی نودالله ﷻ لس رحمتونه به په هغه باندې رالیګلې کیږی.دغه شان دیوسلام په بدله کښې به لس سلامونه[1] یوبل روایت کښې دی چه په یودرودبه لس نیکئی ملاویږی لس ګناهونه به معاف کیږی اولس درجې به ئی زیاتیږی اوهم ددې په مثال به هغه ته واپس کولې شی[2] کوم سړې چه په ماباندې یوځل درود راولیګی الله ﷻ به په هغه لس رحمتونه نازل کړی[3] فرمائی چه په ماباندې درود رالیږئی هغه ستاسو دپاره زکوة دې اوزمادپاره وسیله غواړئی هغه په جنت کښې یوه اوچته درجه ده چه هم یوکس ته به ملاویږی څه عجیبه ده چه هغه هم زه یم[4] دحضرت عبدالله بن عمرو ﷺ قول دې چه په حضوراکرم ﷺ باندې څوك درود لیګی الله ﷻ اود هغه فرښتې په هغه باندې اویاځل درود لیګی. اوس چه څوك غواړی نوکم دې کړی اوچه څوك غواړی نوزیات دې کړی. واورئی یوځل نبی کریم ﷺ مونږ له تشریف راوړو داسې لکه چه څوك یوکس رخصت کوی. درې ځل ئی اوفرمائیل زه امی نبی محمد ﷺ یم زما نه پس څوك نبی نشته ماته ډیرواضحه ډیر کولاو جامع اوختم کونکې کلام راکړې شوې دې.ماته د دوزخ د داروغه ګانو اود عرش د اوچتونکو فرښتوشمیر خودلې شوې دې په ماباندې خاص پرزونې شوی دی اوما ته اوزما امت ته عافیت راکړې شوې دې. ترکومې چه زه په تاسوکښې موجودیم اورئی اومنئی اوکله چه زما رب ماواخلی نو کلام الله کلك اونیسئی. ددې حلال حلال او حرام ئی حرام اوګنړئی[5] فرمائی چه دچا په وړاندې زماذکر اوشی هغه له پکاردی چه په ماباندې درود راؤلیږی دیوځل درود لیګلوسره الله ﷻ په هغه باندې لس رحمتونه نازلوی[6] یودرود لس رحمتونه ورکوی اولس ګناهونه معاف کوی[7] بخیل هغه دې چه دچاپه وړاندې زما ذکراوکړې شواوهغه په ما باندې دروداونه لولی[8] یوبل روایت کښې دی داسې سړې د ټولونه زیات بخیل دې. په یومرسل حدیث کښې دی چه دانسان د پاره دومره بخل کافی دې چه دهغه په وړاندې زما نوم واخستې شی اوهغه درود اونه وائی.فرمائی هغه سړې بربادشو چاسره چه زما ذکر اوکړې شواوهغه په ماباندې درودونه لیږلو.هغه هم برباد شو چه دهغه په ژوندکښې رمضان راغلواود ختمیدوپورې هغه خپل ګناهونه معاف نه کړې شو. اوهغه هم بربادکړې شوڅوك چه د هغه مور پلارد بوډاوالی زمانې ته اورسیدو اوبیاهم هغه جنت ته اونه رسیدو.[9]

**داحادیثو خلاصه او د درود حکم:-** دا احادیث دلیل دې په دې خبره چه په حضوراکرم ﷺ باندې درود ونیل واجب دی. دعلماؤد یوې ډلې هم داقول دې لکه طحاوی اوحلیمی وغیره. ابن ماجه کښې دی چه څوك په ماباندې درودونیل هیرکړی هغه د جنت لارهیره کړه.[10] داحدیث مرسل دې خود اولنو احادیثو

---

[1] نسائی کتاب السهو باب فضل التسلیم علی النبیﷺ: ۱۲۸٤ وسنده حسن، احمد: ٤/۳۰، ابن حبان: ۹۱۵، حاکم: ۲/٤۲۰..

[2] احمد: ٤/۲۹

[3] صحیح مسلم کتاب الصلاة باب الصلاة علی النبیﷺ بعدالتشهد: ٤۰۸، ابوداوٗد: ۱۵۳۰، ترمذی: ٤۸۵، ابن حبان: ۹۰٦، احمد: ۳/۳۸۲.(مسلم)

[4] احمد: ۲/۳٦۵ مسندابی یعلی: ٦٤۱٤.

[5] احمد: ۲/۱۷۲

[6] السنن الکبری: ۹۸۸۹ ابی یعلی: ٤۰۰۲، مسندالطیالسی: ۲۱۲۲..

[7] نسائی کتاب السهو باب الفضل فی الصلاة علی النبیﷺ: ۱۲۹۸ وسنده صحیح الادب المفرد: ٦٤۳، احمد: ۳/۱۰۲، ابن حبان: ۹۰٤.

[8] ترمذی کتاب الدعوات باب رغم انف رجل ذکرت عنده: ۳۵۳٦ وسنده حسن، السنن الکبری ۹۸۸٤، احمد: ۱/۲۰۱، حاکم: ۱/۵٤۹.

[9] ترمذی کتاب الدعوات باب رغم رجل ذکرت عنده....: ۳۵٤۵، وسنده حسن .

[10] ابن ماجه کتاب اقامة الصلوات باب الصلاة علی النبی ﷺ: ۹۰۸،

سره د دې پوره تقویت کیږي. بعضې خلق وائي چه په یومجلس کښې یوځل وئیل خو واجب دي او بیا مستحب دي(۱)د ترمذی په یوبل حدیث کښې چه څوك په یومجلس کښې ناست وي اود الله ﷻ ذکر او درود کولونه بغیر راپاسي هغه مجلس به د قیامت په ورځ په هغه باندې وبال وي. که الله ﷻ غوارې نو په عذاب به ئې کړي اوکه غوارې نو معاف به ئې کړي(۲) په یوبل روایت کښې دذکرالله ذکر نشته به دې کښې داهم دي چه که هغه جنت ته هم لاړشي خود ثواب نه د محرومتیاپه وجه به هغه ته سخت افسوس وي. بعضې خلق وائي چه په ټول عمر کښې یوځل درودوئیل واجب دي بیامستحب دي د پاره چه د آیت تعمیل اوشي. قاضي عیاض رحمه الله په رسول الله ﷺ باندې د درود لیګلووجوب بیانولو سره د دې قول تائیدکړې دې. خوطبری فرمائي چه د آیت نه خو هم استحباب ثابتیږي اوپه دې باندې ئې داجماع دعوی کړې ده.ډیر ممکن دی چه دهغه مطلب هم دا وي چه یوځل واجب دی او بیامستحب لکه د رسول الله ﷺ د نبوت ګواهي ورکول. زه خووایم چه ډیر داسې اوقات دي چه مونږ ته په رسول الله ﷺ باندې د درود وئیل حکم دې.خوبعضې وخت کښې واجب وي اوبعضې ځائې کښې واجب نه وي. اذان اوریدوسره اوګورئی مسنداحمدکښې حدیث دې چه کله ته اذان واورې نوچه څه مؤذن وائي هغه ته هم وایه بیا په ماباندې درود وایه د یوپه ځائې به لس ځل درود الله ﷻ په تاراولیګي. بیازما د پاره وسیله غواړه چه په جنت کښې یومنزل دې اوهم یوبنده د هغې مستحق دې اوزما امید دی چه هغه بنده به هم زه یم. واورئی چه څوك زما د پاره د وسیلې دعاکوی د هغه د پاره زما شفاعت حلالیږي.(۳) اود درود زکاة کیدو په حدیث کښې هم د دې بیان تیرشوې دې. ارشاد دې چه کوم سړې درود راولیګي اووائي ((اللهم انزله المقعد المقرب عندك يوم القيمة)) د هغه د پاره به زما شفاعت د قیامت په ورځ واجب شي. (۴) آبن عباس ﷺ نه دادعانقل ده. ((اللهم تقبل شفاعة محمد الكبرى وارفع درجته العليا واعطه سؤله في الاخرة والاولى كما اتيت ابراهيم وموسى))

**جمات ته د تلواود راوتودعا:-** مسندکښې دی حضرت فاطمة الزهری رضي الله عنها فرمائي کله چه به حضور ﷺ جمات ته تلونو د درود اوسلام نه پس به ئې لوستل((اللهم اغفرلي ذنوبي وافتح لي ابواب رحمتك)) اوچه کله به دجمات نه وتلو نو د درود اوسلام نه پس به ئې وئیل ((اللهم اغفرلي ذنوبي والفتح لي ابواب فضلك))(۵) دحضرت علي ﷺ فرمان دې کله چه جمات ته لاړشې نو په حضور ﷺ باندې درودوایه.

**د مانځه په آخری قعده کښې د التحیات درود:-** د دې بحث اول تیرشوې دې اوپه اول تشهدکښې دې نه چا واجب نه دی وئیلی البته د مستحب کیدو یوقول د امام شافعي رحمه الله دې سره د دې چه دویم قول د دې خلاف هم د دوی نه نقل دې.

**په مانځه کښې د درود شریف لوستلو حکم**

**مسلك حنفي:-** د حنفیانو په نیز په مانځه کښې په آخری قعده کښې درود شریف وئیل فرض نه دی.بلکه مسنون دې.(تسهیل الهدایه شرح هدایه (۱۱۱/۲۵)-

---

(۱) ترمذی تحت رقم ۳۵٤۵

(۲) ترمذی کتاب الدعوات باب ماجاء ل القوم يجلسون ولايذكرون الله: ۳۳۸۰وهوصحيح، احمد:۲/٤٤٦، ابن حبان: ۵۹۰.

(۳) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب استحباب القول مثل قول المؤذن لمن سمعه: ۳۸٤، ابوداوٗد:۵۲۳، ترمذی: ۳٦۱٤، احمد:۲/۱٦۸، ابن حبان: ۱٦۹۰، بيهقی:۱/٤۱۰.

(۴) احمد:٤/۱۰۸ المعجم الوسط:۳۳۰۹، مجمع الزوائد:۱/۱٦۳

(۵) ترمذی کتاب الصلاة باب ماجاء مايقول عند دخول المسجد:۳۱٤ابن ماجه:۷۷۱، احمد:٦/۲۸۲،مسندابی یعلی:٦۸۲۲، شرح السنة:۳۸۱، ابن ابی شيبه:۱/۳۳۸.

**د جنازې په مانځه کښې په حضورﷺ باندې درودلوستل:-** سنت طريقه دا ده چه په اول تکبيرکښې سورة فاتحه اولولى په دويم تکبيرکښې درود اولولى په دريم کښې د مړى دپاره دعااوکړى او په څلورم کښې ((اللهم لاتحرمنا اجره ولاتفتنا بعده)) الخ لولئى. د يوصحابى رضي الله عنه قول دې چه د جنازې مسنون مونځ دا دې چه امام تکبير اوائى نو په مزه باندې الحمداولولئى بيا په حضورﷺ باندې درود اووايئى اود جنازې د پاره په اخلاص دعا اوکړئى اوپه تکبيرونوکښې هيڅ مه وائى بياپه مزه باندې سلام اوګرځوئى. (¹)

**د جنازې په مونځ کښې د سورة فاتحې لوستلو حکم**

**مسلک حنفى:-** زمونږ (د حنفيانو) په نيز د اولنى تکبير نه پس د سورة فاتحه لوستل مشروع نه دى. (تسهيل الهدايه ۷۳۱۲)-

د اخترپه مانځه کښې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حضرت ابوموسى رضي الله عنه او حضرت حذيفه رضي الله عنه له راغلوولید بن عقبه رضي الله عنه اووئيل داخترورځ ده د تکبيرونوڅه کيفيت دې؟عبدالله رضي الله عنه اووئيل تکبيرتحريمه ونيلو سره د الله جل جلاله حمد اوکړه بيا په رسول الله ﷺ باندې درود اووايه بيادعااوغواړه بياتکبير اوکړه، بياهم دا اوکړه تکبير اووايه، بيا دا اوکړه تکبير اووايه اوبياهم دا اوکړه تکبيراووايه بيا تکبير اووايه. بيا قراءت اوکړه اوبياتکبيرونيلو سره رکوع اوکړه. بيا اودريږه اولوله اود خپل رب حمدبيان کړه په حضورﷺ باندې صلوة اولوله دعااوکړه اوتکبير اووايه اوهم دغه شان اوکړه بيارکوع ته لاړشه. حضرت حذيفه رضي الله عنه حضرت ابوموسى رضي الله عنهما هم د دې تصديق اوکړو.

**د دعا په ختميدوباندې :-** ترمذى شريف کښې د حضرت عمر رضي الله عنه قول دې چه دعاد زمکې اوآسمان په مينځ کښې زوړنده وى ترڅو چه درود شريف اولولى نو خيژى(²)يومرفوع روايت داسې هم راغلې دې پدې کښې دى چه ددعا په اول کښې په مينځ کښې اوپه آخره کښې درودشريف لولئى. په يوغريب اوضعيف حديث کښې دى چه ما د سور د پيالئى په شان مه کوئى کله چه هغه خپل ټول ضرورى څيزونه اخلى نوداوبو کټورې هم ډکوى که د اودس ضرورت پيښ شونواودس به اوکړى که تګې شو نو اوبه نى څکى ګنى هسې به ئې واړوى. د دعا په شروع کښې د دعاپه مينځ کښې اوددعاپه آخره کښې په ماباندې درودشريف لولئى. خاصکرپه دعائى قنوت کښې ددرود شريف ډيرتاکيد دې. حضرت حسن رضي الله عنه فرمائى ماته رسول الله ﷺ داکلمات اوخودل کوم چه په وتروکښې لولم. ((اللهم اهدنى فيمن هديت وعافنى فيمن عافيت وتولنى فيمن توليت وبارك لى فيما اعطيت وقنى شرما قضيت فانك تقضى ولا يقضى عليك انه لايذل من واليت ولايعزمن عاديت تباركت ربنا وتعاليت))(³) د نسائى په روايت کښې په آخره کښې داالفاظ هم دى. ((وصل الله على النبى))(⁴)

**د جمعه په ورځ اودجمعې په شپه درود شريف ونيل:-** مسنداحمد کښې دى دټولونه غوره ورځ د جمعه ورځ ده. هم په دې ورځ حضرت آدم عليه السلام پيداکړې شو اوهم په دې ورځ واخستې شو هم په دې ورځ شپيلئى ده اوهم په دې ورځ بې هوشى ده.نوتاسو په دې ورځ په ما باندې په کثرت سره درود لولئى. ستاسو درود ماته پيش کولې شى. صحابه کرامورضوان الله عليهم اجمعين اووئيل چه تاسو خو به په زمکه کښې وراسته کړې شوى ئى. بيابه زمونږ درود تاسو ته څنګه پيش کولې شى؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله جل جلاله په زمکه باندې د انبياء کرامو بدنونه خوړل حرام کړى دى. ابوداؤد نسائى وغيره کښې هم دا

---

¹) حاکم: ۱/۳٦۰رهوصحيح، النسائى ٤/۷٥ح ۱۹۹۱، بيهقى:٤/۳۹، الام للشافعى:۱/۲۳۹.

²) ترمذى کتاب الوتر باب ماجاء فى فضل الصلاة على النبى ﷺ:٤۸٦.

³) ابوداؤدکتاب الوتر باب القنوت فى الوتر:۱٤۲٥-۱٤۱٦رهوصحيح، ترمذى:٤٦٤، ابن ماجه:۱۱۷۸، احمد:۱/۲۰۰،

⁴) نسائى کتاب قيام الليل باب الدعافى الوتر:۱۷٤۷.

حديث دې(١)ابن ماجه كښې دي دجمعه په ورځ په كثرت سره درود وائې پدغه ورځ فرښتې حاضريږي ترکومې پورې چه څوك په مادرود وائی هغه ماته پيش كولې شي ترڅو چه هغه فارغ شوې نه وی. تپوس اوكړې شو د مرگ نه پس هم؟ ونی فرمائيل الله ﷻ په زمکه باندې د انبياء كرامو بدنونه سخا كول اوخاورې كول حرام كړی دی د الله ﷺ انبياءكرام ژوندی دی اوهغوی ته رزق وركو لې شي. (٢) دا حديث غريب دې اوپه دې كښې انقطاع ده. عباده بن نسی ابوالدرداء ﷺ نه دې ليدلې. والله اعلم. بيهقی كښې هم حديث دې چه د جمعه په ورځ او د جمعه په شپه په ماباندې درود وائې (٣)خوهغه هم ضعيف دې. يوروايت كښې دی چه دهغوی بدن زمکه نه خوری چاسره چه روح القدس كلام كړې وی خو داحديث هم مرسل دې. په يوبل مرسل حديث كښې هم د جمعه په ورځ اوشپه كښې په كثرت سره د درود شريف وئيلو حكم دې. دغه شان په خطيب باندې هم په دوارو خطبوكښې درود وئيل واجب دی دې نه بغيريه خطبه صحيح نه وی. ځكه چه داعبادت دې او په دې كښې دالله تعالى ذكر واجب دې نود رسول الله ﷺ ذكر هم واجب دې. لكه اذان اومونځ. د امام شافعي اوامام احمد ﷫ هم دا مذهب دې.

**په خطبه كښې د درود شريف وئيلو حكم**

**مسلك حنفي:-** په خطبه كښې د درود شريف لوستل سنت دی (عالمگيری كتاب الصلاة ٢٨١٣).

**دسلام متعلق نور روايات:-** ابوداؤد كښې دی كوم مسلمان چه په ماباندې سلام لولي الله ﷻ زما روح راواپس كوی تردې چه زه د هغه د سلام جواب وركوم(٤)ابوداؤدكښې دی خپل كورونه قبرونه مه جوړونی زما په قبرباندې عرس اوميله مه لگونی هلته په ماباندې درود وائی كه تاسو هرځائې كښې ئې خوستاسو درودماته رسولې شی(٥)قاضی اسماعيل بن اسحاق خپل كتاب فضل الصلوة كښې يوروايت راوړلې دې يوسړې به هرسحر د رسول الله ﷺ روضه ته راتلو اودرود اوسلام به ئی وئيلو. يوه ورځ هغه ته حضرت علی بن حسين بن علی ﷺ اووئيل ته هره ورځ داسې ولې كوې؟ هغه وئيل په حضورﷺ باندې سلام وئيل زما ډير خوښ دی. هغوی اوفرمائيل واوره زه تاته يوحديث اوروم. ما د خپل پلار نه هغه زما د نيكه نه اوريدلې دې چه رسول الله ﷺ فرمائيل زما په قبرباندې اختر مه جوړونی اونه خپل كورونه قبرونه جوړونی تاسو چه كوم ځائې كښې هم ئی دهغه ځائې نه په ماباندې درود اوسلام راليگئی ماته رارسی. (٦) د دې په اسنادكښې يوراوی مبهم دې د كوم نوم چه ذكر نه دې اوپه سندسره داروايت مرسل نقل دې. دحسن بن حسن بن علی ﷺ نه روايت دې هغه د رسول الله ﷺ قبر سره څه كسان اوليدل اوهغوی ته ئی داحديث واورولو چه د حضورﷺ په قبرباندې ميله لگول ئی منع كړی دی(٧) ممكن دی چه دهغوی د څه بې ادبئی په وجه داحديث هغوی ته د اورولو ضرورت پيش شوې وی.مثلاً هغوی چرته په اوچت آوازكښې خبرې كولې. داهم روايت دې چه هغوی يوسړې د حضورﷺ روضې ته وار په وار په راتلوسره اوليدونوونی فرمائيل چه ته اوكوم سړې چه په اندلس كښې وی د سلام ليگلو په اعتبارسره بالكل يوشان ئی.طبرانی كښې دی چه تاسوكوم ځائې كښې هم ئی سلام ليگئی سلام ماته رسولې شی. طبرانی كښې دی چه حضورﷺ د دې آيت تلاوت اوكړو اوونی

(١)ابوداؤد كتاب الصلاة الجمعة باب فضل يوم الجمعة:١٠٤٧ نسائي:١٣٧٥ ،ابن ماجه:١٠٧٥، احمد:٨/٤، ابن حبان:٩١٠.

(٢) ابن ماجه كتاب الجنائز باب ذكر وفاته ودفنهﷺ:١٦٣٦.

(٣) بيهقي:٢٤٩/٣.

(٤) ابوداؤد كتاب المناسك باب زيارة القبور:٢٠٤١

(٥) ابوداؤد كتاب المناسك باب زيارة القبور:٢٠٤٢وسنده حسن.

(٦) مسندابي يعلى:٤٦٩

(٧) مصنف عبدالرزاق:٦٧٢٧.

فرمائیل داخاص راز دي.که تاسو مانه تپوس نه کولو نو مابه هم نه خودلو. واورئی ماسره فرښتې مقرر دی کله چه زما ذکر دیومسلمان په وړاندې کولې شي او هغه په ماباندې درود وائی نو فرښتې وائی الله ﷺ دې تاااوبښی اوپخپله الله ﷻ اودهغه فرښتې کومې چه په زمکه باندې دی آمین وائی(۱) دا حدیث ډیر غریب دې اوددې سند ډیر ضعیف دې. مسند احمد کښې دی د الله ﷻ فرښتې دی چه په زمکه ګرځی راګرځی زما د امت سلام ماته رارسوی(۲) په نسائی وغیره کښې هم داحدیث دې. یو حدیث کښې دی چه څوك زما قبرسره په ماباندې سلام وائی هغه زه اورم اوچه څوك د لرې نه سلام رالیږی هغه ماته رارسولې شي. داحدیث سنداً صحیح نه دې. محمدبن مروان صغیر متروك دې.

**د تلبیه په وخت کښې**:-زمونږ د ملګروقول دې چه د احرام والا کله لبیك وائی نوهغه هم درودونیل پکاردی. دارقطنی وغیره کښې د قاسم بن محمد بن ابوبکر صدیق رحمه الله فرمان دې چه خلقو ته به د دې خبرې حکم کولې شو.

**په صفا باندې**:-په صحیح سندسره د فاروق اعظم رضی الله عنه قول نقل دې کله چه تاسو مکې ته اورسئی نو اووه ځل طواف کوئی. په مقام ابراهیم باندې دوه رکعته مونځ اداکړئی بیاصفا ته اوخیژئی دومره چه د هغه ځائ نه بیت الله په نظرراشي. هلته اودریږئی اووه تکبیر وائې د دې په مینځ کښې د الله ﷻ حمد اوثنا بیان کړئی. درود لولئی اودځان د پاره دعا اوغواړئی بیا په مروه باندې داسې اوکړئی.

**د ذبح کولو په وخت**:-زمونږ ملګروداهم وئیلی دی چه دحلالې په وخت کښې هم دالله ﷻ نوم اخستو سره درود وئیل پکار دی.آیت ﴿وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴾(۳) نه هغوی تائیدغوښتې دې څکه چه ددې په تفسیر کښې دی چه کوم ځائ دالله ﷻ ذکراوکړې شي دحضور ﷺ نوم به هم اخستې شي جمهورددې مخالف دی وائی چه دلته صرف دالله ﷻ ذکر کافي دې.لکه دخوراك په وخت کښې اودجماع په وخت کښې وغیره.

په دې وخت کښې درود وئیل د سنتونه ثابت نه دی. په یوحدیث کښې دی چه د الله ﷻ په ټولو انبیاؤ کرامو اورسولانو صلوة اوسلام لیګئی هغوی هم زما په شان د الله ﷻ رالیګلې شوی دی. خود دې په سندکښې دوه ضعیف راویان دی عمر بن هارون او دهغه استاذ د غوږ د خبرو اوریدو په وخت کښې هم درود وئیل په یوحدیث کښې دی که د دې اسناد صحیح ثابت شي نو په صحیح ابن خزیمه کښې دی.کله چه ستاسو په غوږکښې آواز راځی نومایادوئی اودرود لولئی اوفرمائی چاچه زه په ښیګړه سره یادکړم هغه به الله ﷻ هم یادکړی. د دې سندغریب دې اود دې په ثبوت کښې نظردی

**مسئله**:-اهل کتابت داخبره مستحب ګڼړی چه کله لیکونکې دحضوراکرم ﷺ نوم لیکی نودې سره دې درودلیکی.په یوحدیث کښې دی کوم سړې چه په یوکتاب کښې په ماباندې درودداولیکی دهغه د درود ثواب به ترهغه وخته پورې جاری وی ترکومې پورې چه هغه کتاب موجودوی.خو په یوڅو وجوهاتو دا حدیث صحیح نه دې. بلکه د امام ذهبی رحمه الله استاذ دې ته موضوعی وائی.حدیث په ډیرو طریقو سره نقل دې خود دې یوسندهم صحیح نه دې. خطیب بغدادی رحمه الله په خپل کتاب آداب الراوی والسامع کښې لیکلی دی ماد امام احمد رحمه الله دلاس لیکلې شوې کتاب کښې په ډیروځایونوکښې درسول الله ﷺ نوم لیدلې دې خویوځائ کښې هم درود نه وو لیکلې شوې. هغوی به زبانی درود لوستلو.

**(فصل)په غیر نبی د صلاة حکم او په غیر نبی د صلاة حکم**:-دنبیانونه علاوه په غیرنبیانوباندې صلوة لیږل

---

(۱) طبران:۲۷۵۳مجمع الزوائد:۹۶/۷.

(۲) نسائی کتاب السهو باب التسلیم علی النبی ﷺ:۱۲۸۳وسنده صحیح، احمد:۴۵۲/۱.

(۳) ۹۴/الم نشرح:۴.

که تبعاً وی نو بې شکه جائزدې لکه چه په حدیث کښې دی((اللهم صلی علی محمد واله وازواجه وذریته))او په صرف غیرنبیانو باندې صلوة لیګلوکښې اختلاف دی.بعضې داجائزګنړی اوپه دلیل کښې داآیت ﴿هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَائِكَتُهُ لِيُخْرِجَكُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ۚ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا﴾(١) اوآیت ﴿أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ﴾(٢) او ﴿وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾(٣)پیش کوی.اودا حدیث هم چه رسول الله ﷺ له به دچاصدقه راتله نو فرمانیل به نی ((وَصَلِّ عَلَيْهِمْ))عبدالله بن ابی اوفی ﷜ فرمانی کله چه زما پلارحضور ﷺ له د صدقه مال راوړو نوحضوراکرم ﷺ اوفرمائیل ((اللهم صلی علی آل ابی اوفی)) (بخاری اومسلم)(٤)یوبل حدیث کښې دی یوښځې ونیل یارسول الله ﷺپه مااوزما په خاوندباندې صلوة راولیګه نوحضوراکرم ﷺ اوفرمائیل ((صلی الله علیك وعلی زوجك)) (٥) خو جمهور علماء د دې خلاف دی اووائی چه په نورو باندې د انبیاؤکرامو نه علاوه خاصة درودلیګل منع دی. د دې د پاره چه د دې لفظ استعمال د انبیاء علیهم السلام د پاره دومره زیات شوې دې چه اوریدوسره په ذهن کښې دا خیال راځی چه دانوم د یونبی دی نواحتیاط هم په دې کښې دې چه د غیرنبی دپاره دې دا الفاظ نه شی ونیلې. مثلاً ابوبکر ﷺ یاعلی ﷺ دې نه شی ونیلې سره د دې چه په معنی کښې هیڅ قباحت نشته لکه څنګه چه محمد عزوجل نه شی ونیلې. سره د دې چه ذی عزت اوذی مرتبه هغوی هم دی.څکه چه دا لفظ دالله ﷻ دذات دپاره مشهورشوی دی.اوپه کتاب اوسنت کښې دصلوة استعمال دغیرانبیاء دپاره شوې دې. هغه ددعا په توګه وو هم په دې وجه دهغې نه پس آل ابی اوفی چا په دې الفاظوسره بیا نه دې یادکړې. نه حضرت جابر ﷺ اود هغه بی بی. هم دا مسلك مونږ ته هم ښه لګی. والله اعلم.

### د غیر نبی دپاره د ،،علیه السلام،، ونیلو حکم

**مسلك حنفی:-** د ،، سلام،، لفظ ابتداء مستقلا د غیر نبی دپاره استعمالول جائز نه دی لکه داسې نشی ونیلې چې ((السلام علی ابی بکر رضی الله عنه)) البته تبعاً د غیر نبی دپاره هم د دې استعمال جائز دې لکه داسې ونیلی شی ((والسلام علی نبینا وعلی رفیقه ابی بکر) اجمل الحواشی بتغیر شرح اصول شاشی (ص،۱۸)۔
بعضې خلق یوه بله وجه هم بیانوی چه د غیر انبیاؤ د پاره دا الفاظ صلوة استعمالول د بې دینه خلقو طریقه ده اوهغوی د خپل بزرګانو په حق کښې داسې الفاظ استعمالوی. نودهغوی اقتداء مونږ له نه دی کول پکار. په دې کښې هم اختلاف دې چه دامخالفت د کومې درجې پورې دې د حرمت په توګه که د کراهت په توګه یاخلاف اولی. صحیح دا دی چه دا مکروه تنزیهی دی څکه چه دبدعتیانو طریقه دد په کوم باندې عمل کول چه ټیك نه دی اومکروه هم هغه وی په کوم کښې چه نهی مقصود وی. ددې اعتبار په دې کښې په دې وجه دې چه د صلوة لفظ به سلفو هم د انبیاؤکرامو د پاره ونیلو لکه څنګه چه د عزوجل لفظ د الله ﷻ د پاره ونیلی کیږی. پاتې شو سلام نود دې باره کښې شیخ ابومحمدجوینی رحمه الله فرمانی چه داهم د صلوة په معنی کښې دې نو په غائب باندې د دې استعمال مه کوه اوچه کوم نبی نه وی دهغه د پاره دې خاصة نه وانی نوعلی ﷺ نه دی ونیل پکار. د ژوندو اومړو هم دغه حکم دې اوچه څوك مخامخ موجود وی هغه ته خطاب کولوسره سلام علیك یا سلام علیکم یا السلام علیك

---

١) ٣٣/الاحزاب:٤٣.
٢) ٢/البقرة:١٥٧.
٣) ٩/التوبة:١٠٣.
٤) د دې تخریج اول تیرشوی دی.
٥) د دې تخریج اول تیرشوی دی.

يا عليكم ونيل جائز دى اوپه دې باندې اجماع ده. دلته دا هم ياد ساتل پکاردى چه د عامو مصنفينود قلم نه على ﷺ راوخى ياعلى كرم الله وجهه راوخى نود معنې په لحاظ په دې كښې هيڅ حرج نشته خو په دې سره په نورو صحابه كرامو ﷺ كښې بې ادبى شان كيږى. مونږ له ټولو صحابه كرامو ﷺ سره ښكلې عقيدت ساتل پكاردى. دا د تعظيم اوتكريم الفاظ دى د دې د پاره د حضرت على ﷺ نه زيات حضرت ابوبكر ﷺ اوحضرت عمر ﷺ مستحق دى. د حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه دنبى كريم ﷺ نه علاوه په بل چاباندې صلوة نه دى ليګل پكار. اود مسلمانانو ښځو اوسړو د پاره د مغفرت دعا كول پكاردى. حضرت عمر بن عبدالعزيز ﷺ يوخل په خپل خط كښې اوليكل چه بعضې خلق د آخرت په اعمالوسره د دنيا د راجمع كولوپه فكر كښې دى اوبعضې مولاناګان حضرات په وعظ كښې د خپلو خليفه ګانو اواميرانو د پاره د صلوة هم هغه الفاظ وائى كوم چه د رسول الله ﷺ د پاره وو. كله چه تاله زما داخط دراورسى نوهغه ته وايه چه صلوة صرف د نبيانود پاره دې اود عامومسلمانانودپاره د دې نه علاوه چه څه غواړې دعاكوه.

حضرت كعب ﷺ وائى هرسحراويازره فرښتې راكوزيږى اود رسول الله ﷺ قبرراګيروى اود خپلو وزرو په راغوندولوسره د رسول الله ﷺ د پاره د رحمت دعاكوى او اويازره د شپې راځى. تردې چه د قيامت په ورځ چه كله دحضوراكرم ﷺ قبر اوشلولې شى نو ورسره به اويازره فرښتې وى. (فرع) امام نووى ﷺ فرمائى چه په حضور اكرم ﷺ باندې په يوځاى صلوة اوسلام ليګل پكاردى. صرف صلى الله عليه يا صرف عليه السلام مه وائې. په دې آيت كښې هم د دواړو حكم دې. نواولى هم دا دى چه داسې وائى صلى الله عليه وسلم تسليما.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | يُؤْذُوْنَ | اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ | لَعَنَهُمُ اللّٰهُ |
| بيشكه هغه كسان | چې تكليف رسوى | الله ته | اورسول دهغه ته | لعنت ونيلې دې په هغوئ باندې الله |
| بيشكه خوک چې الله ﷻ او دهغه رسول ﷺ ته تكليف وركوى | ......نو الله ﷻ | | | |
| فِى الدُّنْيَا | وَالْاٰخِرَةِ | وَاَعَدَّ | لَهُمْ | عَذَابًا مُّهِيْنًا⁵⁷ |
| په دنيا كښې | او په اخرت كښې | او تيار كړې ئې دې | دپاره دهغوئ | عذاب سپكونكې |
| به پرې په دنيا اواخرت كښې لعنت ورو‌ى | او هغوئ دپاره ئې رسوا كونكې عذاب تيار ساتلې دې | | | |
| وَالَّذِيْنَ | يُؤْذُوْنَ | الْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ | بِغَيْرِ مَا |
| او هغه كسان | چې تكليف رسوى | مومنانو سړوته | او مومنانو ښځو ته | بغير دهغې عمل نه |
| او خوک چې مؤمنانو سړو او مومنانو ښځو ته هيڅه بيسه (بغيرد څه وجې) تكليف | | | | |
| اكْتَسَبُوْا | فَقَدِ احْتَمَلُوْا | بُهْتَانًا | وَّاِثْمًا | مُّبِيْنًا⁵⁸ |
| چې كړې وى هغوئ | پس هغوئ په سر اغستلى ده سزا | دغټ دروغو | او دګناه | ښكاره |
| وركوى | نو هغوئ ډير لوئې بهتان لګوى | ..................او ښكاره ګناه كوى | | |

**قوله تعالى:-اِنَّ الَّذِيْنَ يُؤْذُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ**

**الله تعالى رسول ﷺ اوموٴمنانوته تكليف وركول ګناه ده:-**كوم خلق چه دالله ﷻ داحكامو نافرمانى كولوسره دهغه دمنع كړې شوى كارونونه نه منع كيږى اود هغه په نافرمانوباندې كلك ولاړ وى اوهغه خفه كوى اودهغه رسول ﷺ پسې قسم قسم بهتانونه تړى هغوى ملعون اومعذب دى.

**الله ﷻ ته دتکلیف ورکولو مطلب:**-عکرمه رحمه الله فرمائی دې نه مراد تصویرونه جوړونکی دی. بخاری او مسلم کښې درسول الله ﷺ ارشاددې چه الله ﷻ فرمائی ماته بنیادم تکلیف راکوی هغه زمانې ته کنځلې کوی اوزه زمانه یم اوهم زه د شپې ورځې اړول رااړول کوم(۱)مطلب دا چه د جاهلیت والا به وئیل هائې زما نه دې هلاکه شی دې خوزمونږ سره دا اوکړه اودې مونږ سره داسې اوکړه. دالله تعالی افعال زمانې طرف ته منسوب کولوسره بیازمانې ته بدردونیل نولکه د افعالو فاعل یعنی الله ﷻ ته بدردې ونیل دی.

**نبی کریم ﷺ ته تکلیف رسول:**- حضرت صفیه رضی الله عنها سره چه کله نبی کریم ﷺ نکاح اوکړه نو په دې باندې هم بعضې خلقو خبرې جوړول شروع کړې وو. د ابن عباس رضی الله عنه د قول مطابق دا آیت هم دې باره کښې نازل شوې(۲) یت عام دې که څنګه دې هم د الله ﷻ رسول ﷺ ته تکلیف ورکړو هغه به د دې آیت لاندې ملعون اومعذب وی. څکه چه رسول الله ﷺ ته تکلیف رسول داسې ده لکه چه الله ﷻ ته تکلیف رسول. څنګه چه د حضور ﷺ په تابعدارنی کښې د الله ﷻ تابعداری ده.

**صحابه کرامو ته تکلیف رسول بهتان او غټه ګناه ده :**-حضوراکرم ﷺ فرمائی زه تاسو ته الله ﷻ دریا دوم. ګورنی الله ﷻ په مینځ کښې راوستوسره زه تاسوته وایم چه زماصحابه کرام زمانه پس نبنه مه جوړونی. زما دمحبت په وجه هغوی سره هم محبت ساتنی هغوی سره بغض اوکینه ساتونکې ماسره دښمنی کونکې دې هغوی ته چه چاتکلیف ورکړوهغه ماته تکلیف راکړو او چاچه ماته تکلیف راکړو هغه الله ﷻ ته تکلیف ورکړو. اوچاچه الله ﷻ ته تکلیف ورکړو نو یقین اوکړئی چه هغه به ئې لکه دبوسو والوزوی(۳)داحدیث په ترمذی کښې هم دې. کوم خلق چه ایمانداران د دې بدوطرف ته نسبت کوی کوم نه چه هغوی بری دی هغوی ډېر لوئ بهتان کونکې دی اوزبردست ګناهګاردی. په دې وعیدکښې د ټولونه اول خوکافران داخل دی بیا رافضی شیعه ګان چه په صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې عیبونه لګوی. او الله ﷻ چه د چا تعریفونه کړی دی په هغوی باندې دوی بد وائی.الله ﷻ صفافرمائیلی دی چه هغه د انصاراومهاجرینونه خوشحاله دې.په قرآن کریم کښې ځای په ځای دهغوی ستاینې اوتعریفونه موجود دی خودا بې خبرخراب ذهن خلق هغوی ته بدوائی. د هغوی مذمت بیانوی اوپه هغوی کښې هغه خبرې یاد وی د کوم نه چه هغوی بالکل جدادی. حق دا دې چه د الله ﷻ د طرف نه د هغوی زړونه رانده شوی دی. څکه د هغوی ژبې هم اولټه روانې دی. د تعریف شوو خلقو بدوائی اود بدو خلقو تعریفونه کوی.

**عامو مسلمانانو ته د تکلیف رسول حکم:**-دنبی کریم ﷺ نه سوال اوشوچه غیبت څه ته وائی نو هغوی اوفرمائیل چه ستا خپل رور داسې یادول که هغه ئې واوری نوبدورته معلومیږی. سوال اوکړې شو چه که هغه خبره په هغه کښې وی نو؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه هم دغه خو غیبت دې ګنی بیاخو بهتان دې. (۴)یوځل حضوراکرم ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه سوال اوکړو چه د ټولونه لویه سودخوری څه ده؟ هغوی وئیل الله ﷻ ته معلومه ده اود هغه رسول ﷺ ته. حضور ﷺ اوفرمائیل د الله ﷻ په نیز د ټولونه زیات سود د مسلمان بې عزتی کول دی. بیاحضور ﷺ هم د دې آیت تلاوت اوفرمائیلو. (۵)

---

۱) صحیح بخاری کتاب التوحید باب قول الله تعالی ﴿یریدون ان یبدلوا کلام الله﴾:۷۴۹۱، صحیح مسلم۲۲۴۶، ابوداوٗد :۵۲۷۴ ،احمد:۲۳۸/۲، ابن حبان:۵۷۱۶.

۲) الطبری: ۳۲۳/۲۰.

۳) ترمذی کتاب المناقب باب من سب اصحاب النبی ﷺ:۳۸۶۲.

۴) ابوداوٗد کتاب الادب باب فی الغیبة:۴۸۷۴وهو صحیح، ترمذی:۱۹۳۴،احمد:۳۸۴/۲، ابن حبان:۵۷۵۸.

۵) ابن ابی حاتم ومسندا بی لیلی:۴۶۸۹.

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ وَبَنٰتِكَ وَنِسَآءِ الْمُؤْمِنِيْنَ يُدْنِيْنَ

اے نبی ﷺ | اوو ایه | ښځو خپلو ته | او لوڼو خپلو ته | او د ښځو د مومنانو ته | چې زوړند دوی |

ائي پيغمبره! خپلو بيبيانو ته او خپلو لوڼو ته او د نور مسلمانانو بيبيانو ته اووایه | چې په خپلو

عَلَيْهِنَّ مِنْ جَلَابِيْبِهِنَّ ؕ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَنْ يُّعْرَفْنَ

د پاسه د خانونو خپلو | پلو د څادرونو خپلو نه | داطريقه | زياته نزدې ده | چې اوپيژندې شي هغوئ

ځانونو څادرونه راښکته ساتی | دغه شان به زر پيژندې شي |او دوئ ته به (دبې هوده سړو د طرفنه)

فَلَا يُؤْذَيْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝ لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ

او تکليف ورنه کړې شی | او دې الله | ښنونکې | مهربانه | که چرې | منع نهٔ شو |

څه تکليف نه رسی | او الله ﷻ ښنونکې مهربان دې | .........که چرې منافقان او هغه خلق چې

الْمُنٰفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْمُرْجِفُوْنَ

منافقان خلق |او هغه کسان | چې په زړونو د هغوئ کښې | خرابی وی | او افواګانې خورونکی خلق

زړونو کښې چې بيماری ده | ..................او هغه خلق چې په مدينه کښې افواهګانې خوروی

فِي الْمَدِيْنَةِ لَنُغْرِيَنَّكَ بِهِمْ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُوْنَكَ

په مدينه کښې|خامخا به مونږه مسلط کړو تا |په هغوئ باندې| بيا |به په ګاونډ کښې پاتې نهٔ شی ستا سره

منع نه شول |.........نو مونږ به ورپسې تا ورپاڅوؤ| نو بيا به دوئ تاسره په مدينه کښې

فِيْهَآ اِلَّا قَلِيْلًا ۛۚ مَّلْعُوْنِيْنَ ۛۚ اَيْنَمَا ثُقِفُوْٓا

په دې ښار کښې | مګر | دير لږ | لعنتونه به پر ونيلي کيږی | هر چرته چې | موندې کيږی |

ديرلږ پاتې شی | ...............او لعنتيان به شی | ................هر ځائې چې موندلې شی

اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا ۝ سُنَّةَ اللّٰهِ فِي الَّذِيْنَ

رانيولې کيږی به|اووژلي کيږی به|په سختو وژلوسره |داطريقه دالله ده|په معامله دهغه کسانو کښې

نو نيولې به شی | او قتلولې به شی | ................الله ﷻ د پخوانو خلقو پحقله هم دا طريقه ساتلې

خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا ۝

چې تير شوی دی | مخکښې ددې نه | او هر ګز به ته بيا اونهٔ مومې | طريقې دالله لره| هيڅ بد ليدل

ده | ...........................او دالله ﷻ په طريقه کښې به هيڅ قسم تبديلی بيا نه مومې

**قوله تعالیٰ:- يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ**

**مؤمنانو ښځو ته د پردې حکم:**-الله ﷻ خپل نبی کريم ﷺ ته فرمائی چه تاسو مؤمنانو ښځو ته اووائې خاص کرخپلو بيبيانو او لوڼو ته ځکه چه هغوی د ټولې دنياد ښځو نه بهترا وغوره دی چه هغوی دې خپل څادرونه لږ زوړند ساتی. دې د پاره چه د جاهليت د زمانې د ښځونه جدا ښکاری. دغه شان د وينځو

نه هم د ازادوښځو پیژندګلواو فرق ښکاره شي.جلباب هغه څادر ته وائی کوم چه ښځي د لوپټي دپاسه اچوی.حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی الله ﷻ مسلمانانوښځوته حکم ورکوی چه کله هغوی د خپل څه کار دپاره بهراوځي نوچه کوم څادرهغوی اچوی نوهغه دي په سربانديږ راښکته کوی اومخ دي پټوی صرف یوه سترګه دي کولاوساتی.(۱) امام محمدبن سیرین رحمه الله په سوال باندي حضرت عبیده سلیمانی رحمه الله خپل مخ اوسرپټولو سره اوګسه سترګه پټولوسره اوخودل چه د آیت مطلب دا دی(۲)حضرت عکرمه رحمه الله قول دي چه په خپل څادرباندي خپله غاړه پټه کړنی. حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمائی د دي آیت نازلیدلونه پس د انصارو ښځي چه به کله وتلي نوداسي پټي به ګرځیدلي لکه د هغوی په سرونو چه مرغئی دی.تورڅادرونه به ئی په خپل ځان اچول(۳)کله چه دزهری رحمه الله نه سوال اوشو چه وینځي هم څادرونه اچوی که دخاوندانووالاوی اوکه بغیردخاوندانووی.وئی فرمائیل چه لوپټي خودي ضرور اچوی که هغه دخاوندوالاوی اوڅادردي نه اچوی دي دپاره چه په هغوی کښي آزادو ښځوکښي فرق وی

**کافرانوښځو ته د کتلودحرمت وجه:-** دحضرت سفیان ثوری رحمه الله نه نقل دی چه د ذمی کافرانو ښځو ښائست کتل صرف دزناد ویري په وجه سره منع دی. نه داچه دهغوی د حرمت اوعزت د وجه نه ځکه چه په آیت کښي دمؤمنانوښځو ذکردي.څادر رازوړندول د آزادي اوپاك دامن ښځو نښه ده ځکه چه دوی به دڅادر د زوړندولوسره به پیژندګلو کیږی چه دا نه خرابي ښځي دی اونه وینځي دی. د سدی رحمه الله قول دي فاسق خلق د شپي تیاره کښي په لاره تیریدونکو ښځو ته آوازونه کوی د دي دپاره دا نښه شوه چه د کور د ښځو اووینځونوکرانو وغیره ښځو کښي فرق اوشی او په دغه پاکوښځوباندي څوك څله کولاونه کړي شي. بیافرمائی چه د جاهلیت په زمانه کښي د بي پردګئی کوم رسم وو کله چه تاسو دالله ﷻ د دي حکم عمل کونکی جوړشئی نوالله تعالی به مو ټول تیرشوی خطاګاني معاف کړی او په تاسوبه رحم اوکرم اوکړی. بیافرمائی که منافق خلق بدکاره خلق اود دښمنانو د دروغوخبري الوزونکی اوس هم منع نه شواود حق طرفدار نه شو نو اې نبی ﷺ مونږ به تاپه هغوی باندي غالب اومسلط کړو بیاخو به هغوی په مدینه کښي حصارهم نه شی اوډیر زربه تباه کړي شی.اوکومي ورځي چه دهغوی به شی ددربار نه به شړلي شوی وی کوم ځائ چه لیدلي شی راګیرولي به شی.اوبه ډیره خرابه طریقه باندي به قتل کولي شی.پداسي کافرانواومنافقانوباندي کله چه هغوی دخپلي سرکشئی نه نه منع کیږی مسلمانانوته غلبه ورکول دازمونږزړه طریقه ده په کومه کښي چه نه څه بدلون شوي اونه به اوشي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَسْئَلُكَ | النَّاسُ | عَنِ السَّاعَةِ ط | قُلْ | إِنَّمَا | عِلْمُهَا |
| تپوس کوی ستانه | خلق | په باره دقیامت کښي | ورته اووایه | بیشکه | علم دقیامت |
| دا خلق ستا نه دقیامت (دنیتي) په باره کښي تپوس کوی | ته ورته اووایه چي دهغي حال | | | | |
| عِنْدَ اللهِ ط | وَمَا يُدْرِيكَ | لَعَلَّ السَّاعَةَ | تَكُونُ | قَرِيبًا | |
| خاص دالله سره دي | اوڅه خبر ئي ته | کیدي شي چي قیامت | وی | نزدي | |
| (صرف) الله ﷻ ته معلوم دي | اوتاته څه معلومه ده؟ کیدیشي چي قیامت ډیر زر رانزدي شي | | | | |

۱) الطبری: ۲۰/۳۲۴.

۲) الطبری: ۲۰/۳۲۵.

۳) ابوداؤد کتاب اللباس باب فی قول الله تعالی ﴿یدنین علیهن من جلابیبهن﴾: ۴۱۰۱، وسنده حسن.

إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكَٰفِرِينَ وَأَعَدَّ لَهُمْ

بیشکه چې الله| لعنت کړې دې | په کافرانو باندې | او تیار کړې ئې دې | دپاره دهغوئ |

بیشکه الله ﷻ کافران د خپل رحمت نه لرې ساتلې دی |........او هغوئ دپاره ئې

سَعِيرًا ۝ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۖ لَّا يَجِدُونَ وَلِيًّا

دغرغندو وور | همیشه به وی | په هغې کښې | تل ترتله | نهٔ به مومې | دوست |

دلمبو اور تیار کړې دې | همیشه به په کښې پراته وی | هیڅوک به خپل یار یا مددګار بیا

وَلَا نَصِيرًا ۝ يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ

اونهٔ مددګار | په کومه ورځ | چې به اړولې کیږي | مخونه دهغوئ | په وور کښې |

نه مومي | په کومه ورځ چې دهغوئ مخونه په دوزخ کښې اړولې راړولې شي

يَقُولُونَ يَٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا

وائی به هغوئ | کاش چې وې مونږه | چې حکم منلې وې مونږه دالله | او حکم منلې وې مونږه |

نو دابه وائی چې ائې کاش ! که مونږ دالله ﷻ حکمونه منلې وې | اود رسول

الرَّسُولَا ۝ وَقَالُوا رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعْنَا سَادَتَنَا

درسول | او وائی به هغوئ | اے ربه زمونږه | بیشکه مونږه | خبرې اومنلې | دسردارانو زمونږه

خبره مو منلې وې |اودابه وائی چې ائې زمونږ ربه ! مونږ دخپلو سردارانو او مشرانو خبره منلې وه

وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا ۝ رَبَّنَآ ءَاتِهِمْ

او دمشرانوزمونږه | نو هغوئ بې لارې کړو مونږه | دنیغې لارې نه | اے ربه زمونږه | ورکړه دوئ ته |

نو مونږ ئې د نیغې لارې نه بې لارې کړې وو | ............ ائې زمونږه ربه ! هغوئ ته

ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا ۝

دوچند | دعذاب نه | او لعنت اوکړه په دوئ | لعنت سخت

دوچنده سزا ورکړه |..........اولوئې لعنت پرې اووروه

**قوله تعالى:- يَسْـَٔلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ**

**دقیامت قائمیدوعلم صرف الله ﷻ ته دې** :خلق داګنړی چه قیامت به کله راځی د دې علم نبی کریم ﷺ ته دې دحضورﷺ نه به ئې سوال کولو نوالله ﷻ ټولوته دخپل نبی ﷺ په ژبه اوخودل چه دهغه نبی ته بالکل علم نشته داصرف الله ﷻ ته معلومه ده. په سورت اعراف کښې هم دا بیان دې اوپه دې سورت کښې هم. اولنې سورت په مکه کښې نازل شوې وو اودا په مدینه کښې په کوم باندې چه ښکاره کړې شو چه دشروع نه تراخره پورې دقیامت دصحیح وخت اندازه تاته معلوم نه وه.اودومره الله ﷻ تاسو بندیګانوته معلومه کړې وه چه د قیامت وخت نیزدې دې لکه چه بل آیت کښې دی﴿اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ الْقَمَرُ ۝﴾(۱) او

(۱) ٥٤/القمر:۱.

بل آیت کښې دی ﴿اقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُّعْرِضُونَ﴾ (۱) او ﴿أَتَىٰ أَمْرُ اللَّهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ (۲) وغیره.

**قوله تعالى:- إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكَافِرِينَ**

**کافران دالله ﷻ د رحمت نه لرې دي:-** الله ﷻ کافران د خپل رحمت نه لرې کړې دی په هغوی باندې خپل دهمیشه لعنت نازل کړې دې.دآخرت په کورکښې دهغوی د پاره دوزخ تیار دې چه ډیرشغلې وهونکې څیز دې په کوم کښې چه به هغوی دهمیشه دپاره وی نه به چرې وتلې شی اونه به خلاصیدلې شی اونه به هلته څوك فریاد اوریدونکې وینې. نه به نی څوك دوست اوامدادی وی چه خلاص نی کړی یا بچ نی کړې شی. دوی به دوزخ کښې پرمخې اچولې شی. هغه وخت به ارمان کوی چه افسوس مونږ د الله ﷻ اودهغه د رسول ﷺ تابعدار وې.د قیامت په میدان کښې به هم دهغوی دغه ارزو وی.په لاسونو به چکونه لګوی او وائی به چه افسوس مونږ په قرآن پاك باندې عمل کولو. افسوس چه مونږ فلانکې دوست نه وو جوړ کړې. هغه خو مونږ د قرآن پاك اواحادیث رسول نه دهوکه کړو. په واقع کښې هم شیطان انسان ذلیل کونکې دې.

یوبل آیت کښې دی ﴿رُّبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ﴾ (۳) ډیر زر به کافران خواهش کوی چه افسوس هغوی مسلمانان وو. هغه وخت به وائی چه اې الله مونږ دخپلوسردارانو اوخپلو علماؤ تابعداری کړې وه دامیرانواومشائخو پسې لګیدلې وودرسول ﷺ خلاف مو کول اودامو ګنړل چه زمونږ مشران په نیغه لاردی دوی سره حق دی. نن ثابته شوه چه په حقیقت کښې هغوی هیڅ هم نه وو. هغوی خو مونږ صرف دهوکه کړې یو. اې الله ته دوی ته ډبل عذاب ورکړه یود هغوی د خپل کفر اوبل زمونږ د بربادکولو اوپه دوی باندې ډیر خراب لعنت نازل کړې. په یوقراءت کښې **(کبیرا)** په بدله کښې **(کثیرا)** دې مطلب د دواړو یوشان دې.

بخاری اومسلم کښې دی حضرت ابوبکرصدیق ﷺ د رسول الله ﷺ نه د یوې داسې دعادرخواست اوکړو کومه چه هغه په مانځه کښې وائی نوحضوراکرم ﷺ دادعا ورواوخودله ((اللهم انی ظلمت نفسی ظلما کثیراوانه لایغفرالذنوب الاانت فاغفرلی مغفرة من عندك وارحمنی انك انت الغفور الرحیم)) یعنی اې الله ماډیر ګناهونه کړی دی. زه دامنم چه تانه بغیرداڅوك معاف کولې نه شی. نوته دخپلې ښښنې نه ما اوبښه اوپه مابانډې رحم اوکړه ته ډیر ښښونکې اومهربان نی (۴) پدې حدیث کښې هم **(ظلما کثیرا او کبیرا)** په دواړو لفظونو کښې چه کوم غواړې اختیارکړه. لکه په آیت کښې په دواړو قراءتونوکښې چه کوم غواړې لوستلې شې. خو دواړه جمع کولې نه شې. والله اعلم. د حضرت علي ﷺ یوملګرې دهغوی مخالفینوته وئیل چه آیا تاسو به الله ﷻ له په تلوکښې داوائې ﴿رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا﴾

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا | لَا تَكُونُوا | كَالَّذِينَ | آذَوْا |
| اے هغه کسانو چې ایمان مو راوړې دې | مه کیږئ تاسو | ایشان دهغه کسانو | اچې هغوئ تکلیف رسولې وو |

انې مومنانو ! تاسو د هغه چا په شان مه کیږئ ! چې موسی ﷺ ته ئې تکلیفونه

---

۱) ۲۱/الانبیاء:۱.

۲) ۱۶/النحل:۱.

۳) ۱۵/الحجر:۲.

۴) صحیح بخاری کتاب الاذان باب الدعاء قبل السلام:۷۳۴، صحیح مسلم:۲۷۰۵، ترمذی:۳۵۳۱، ابن ماجه:۳۸۳۵،احمد ۴/۱، ابن حبان ۱۹۷۶.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُوسٰى | فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ | مِمَّا | قَالُوْاؕ | وَكَانَ | |
| موسى ته | پس بري كړو هغه له الله | دهغه خبرو نه | چي كړي وي هغوئ | او وو هغه | |
| وركول نو الله ﷻ هغه دخلقو دخبرو نه بری كړو او هغه دالله ﷻ | | | | | |
| عِنْدَ اللّٰهِ | وَجِيْهًاؕ ⑲ | | | | |
| دالله سره | عزت والا | | | | |
| په نيز ډير عزت مند وو | | | | | |

**قوله تعالى:- اٰذَوْا مُوْسٰى فَبَرَّاَهُ اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْاؕ**

**دحضرت موسى ؑ يوه عجيبه واقعه اودموسى ؑ برات:** صحيح بخاری شريف كښې حضرت موسى ؑ ډير شرميدونكې اوډير لحاظ كونكې وو[1] هم دامطلب دې دقرآن پاك ددې آيت. په كتاب التفسير كښې خوامام صاحب ؒ داحديث دومره مختصر راوړې دې خود احاديث انبياء په بيان كښې دا ډير اوږد راوړې دې. په دې كښې داهم دی چه د ډير شرم اوحيا په وجه به ئی خپل بدن د چا په وړاندې نه بربنډولو.بنی اسرائيل دهغوی په تكليف وركولوباندې وواودا خبره ئی مشهوره كړه چه دهغه په بدن باندې دبرص مرض داغونه دی يادهغه هګئی لوئې شوی دی ياڅه بل څه آفت دې په دې وجه دې دومره پرده كوی.دالله ﷻ اراده اوشوه چه دا بدګمانی دهغوی نه لرې كړی. يوه ورځ حضرت موسى ؑ خان له بربنډ غسل كولو.په يوكاڼې باندې هغوی كپړې ايخودې وې كله چه د غسل نه فارغ شو راغلو.كپړې ئی اخستې نو كاڼې وړاندې اوخوټيدو هغوی خپله همساواخسته اوهغه پسې روان شو. هغه په منډوشو هغه هم اې كاڼيه اې كاڼيه زما كپړې زماكپړې آوازكولوسره هغه پسې منډې وهلې. د بنی اسرائيلو يوه ګنړه هلته ناسته وه كله چه هغه دلته راورسيدو نودالله ﷻ په حكم سره كاڼې اودريدو.هغه خپلې كپړې واچولې بنی اسرائيلو دهغوی ټول بدن اوليدلواوچه كومې كمې كوزې خبرې دهغوی په غوږونوكښې پريوتلې وې د هغې نه الله ﷻ خپل نبی پاك كړو. په غصه كښې حضرت موسى ؑ درې څلور يا پنځه لرګی هغه كاڼې اووهلو. رسول الله ﷺ فرمائی والله د دې لرګی نښې به هغه كاڼې باندې پريوتلې.هم د دې براءت وغيره ذكر په دې آيت كښې دې[2] داحديث مسلم كښې نشته دا روايت په نورو ډيرو سندونوسره په ډيروكتابونوكښې دې. بعضې روايتونه موقوف هم دی.

**بله واقعه:**-دحضرت علی ؓ نه روايت دې يوخل حضرت موسى ؑ اوحضرت هارون ؑ غرته تلې وو. كوم ځائ چه د حضرت هارون ؑ وفات اوشو. خلقو د حضرت موسى ؑ د طرف نه بدګمانی شروع كړه اوهغه نی تنګولو چه پروردګارعالم فرښتوته حكم اوكړواوهغوی هغه راوچت كړو اود بنی اسرائيلو په مجلس نی تيركړو الله ﷻ هغه له ژبه وركړه او د خپل قدرتی مرګ څرګندونه نی اوكړه. د هغه د قبر صحيح نشان نامعلوم دې. صرف د هغه غونډئ خلقوته علم دې اوهم هغه ځائ د هغوی د قبر په نوم ياديږی [3]كيدې شی چه تكليف هم دا وی اوكيدې شی چه هغه تكليف وی دكوم ذكر چه اول شوې. خوزه وايم چه داهم كيدې شی چه دا اوهغه دواړه وی بلكه د دې نه علاوه نور هم تكليفونه وی.

**زمونږ په نبی كريم ﷺ باندې بهتان:**- نبی كريم ﷺ يوخل په خلقو كښې څه تقسيم اوكړو په دې باندې يو سړی اوونيل په دې تقسيم سره دالله ﷻ درضامندنی اراده نه ده كړې شوې. حضرت عبدالله ؓ فرمائی چه ماكله داواوريده نو ما اوونيل اې د الله ﷻ دښمنه زه به ستا د دې خبرې خبر رسول الله ﷺ ته خامخا

---

[1]) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة الاحزاب باب ﴿لاتكونواكالذين اذوا موسى﴾:۴۷۹۶.
[2]) صحيح بخاری كتاب احاديث الانبياء باب نمبر:۲۸ حديث :۳۴۰۴، صحيح مسلم:۳۳۹، بتصرف يسير، ترمذی: ۳۲۲۱.
[3]) حاكم: ۶۷۹/۲.

رسوم.نوزه لاړم اورسول الله ﷺ ته مي خبراورسولو دحضوراکرم ﷺ مخ مبارك تك سور شواوونې فرمائيل دالله تعالى رحمت دې وی په موسیٰ عليه السلام باندې د دې نه ورته ډير زيات تكليفونه وركړې شوی وو خوصبرئې كړې وو(۱)یوبل روایت كښې دی درسول اکرم ﷺ عام ارشاد وو چه هيڅ څوك دې هم ماله د چاد طرف نه هيڅ خبره هم نه رارسوی.زه غواړم چه زه تاسوكښې راشم كينم نوچه زما په زړه كښې دچاخبره سخته نه لګی.یوځل څه مال حضور ﷺ له راغلوحضور ﷺ دا په خلقو كښې تقسيم كړو. دووكسانود دې نه پس په خپل مينځ كښې خبرې كولې.حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هغوی سره تيريدلو. یوكس بل ته ونيل چه والله دې تقسيم سره نبی كريم ﷺ نه د الله ﷻ د خوشحالئی څه اراده كړې اونه د آخرت د كور. زه اودريدم اود دواړوخبرې مې اوريدې. بياد رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضرشوم اومې وئيل چه تاسوخووئيلی چه د چاخبرې تاسوله نه راوړې.اوسنئی واقعه ده چه زه روان ووم د فلانكی اوفلانكی نه مې داخبرې واوريدې.ددې په اوريدوسره دحضور ﷺ مخ مبارك دغصې نه تك سور شواوپه هغوی باندې داخبره ډيره درنه پريوتله.بيائې زما طرف ته اوكتل ونې فرمائيل عبدالله پريږده.ګوره موسیٰ عليه السلام ته د دې نه هم زيات تكليف وركړې شو خوهغه صبراوكړو(۲) قرآن پاك فرمائی موسیٰ عليه السلام د الله ﷻ په نيزد ډيرې لوئې مرتبې والا وو مستجاب الدعوات وو. كومه دعاچه به ئې كوله قبليدله به. اود الله ﷻ ديدار نه وو څكه چه داد انسانئ طاقت نه بهروه. د ټولونه زيات دهغوی د شان اوشوكت ثبوت ددې نه ملاويږی چه هغه دخپل رورحضرت هارون عليه السلام دپاره نبوت اوغوښتو.الله ﷻ هغه هم وركړو. فرمائی ﴿وَوَهَبْنَا لَهُ مِنْ رَّحْمَتِنَآ أَخَاهُ هَٰرُونَ نَبِيًّا۝﴾(۳) مونږ هغه له په خپل رحمت سره د هغه رور هارون عليه السلام نبی جوړ كړو.

| | | |
|---|---|---|
| يَآأَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اتَّقُوا اللّٰهَ |
| اے هغه كسانو | چې ايمان مو راوړې دې | اوويريږئ دالله نه |

.........ائې د ايمان خاوندانو ! دالله ﷻ نه اوويريږئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقُوْلُوْا | قَوْلًا | سَدِيْدًا۝ | يُّصْلِحْ | لَكُمْ | اَعْمَالَكُمْ |
| اووايئ | خبره | تيك | صحيح به كړی | تاسو لره | عملونه ستاسو |

اوخبره پخه (اوريښتونې) كوئ ...........الله ﷻ به ستاسو عملونه قابل د قبول كړی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَيَغْفِرْ | لَكُمْ | ذُنُوْبَكُمْ | وَمَنْ | يُّطِعِ اللّٰهَ |
| او معاف به كړی | تاسو لره | ګناهونه ستاسو | او هغه چاچې | اطاعت اوكړو دالله |

اوستاسو ګناهونه بهٔ معاف كړی ............ اوچا چې دالله ﷻ اوددهٔ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَرَسُوْلَهٗ | فَقَدْ فَازَ | فَوْزًا | عَظِيْمًا۝ | اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ |
| او درسول دهغه | نو كامياب شو | په كاميابئ | لويې سره | بيشكه وړاند كړو مونږه دا امانت |

د رسول ﷺ خبره اومنله نو هغه ډير زيات كامياب شو | بيشكه مونږ اسمانونو زمكې

۱) صحيح بخاری كتاب المغازی باب غزوة الطائف فی شوال سنة ثمان:۴۳۳۵، صحيح مسلم:۱۰۶۲،احمد:۱/۲۳۵،ابن حبان:۲۹۱۷.

۲) ابوداؤد كتاب الادب باب فی رفع الحديث من المجلس:۴۸۶۰مختصراً.

۳) ۱۹/مريم:۵۳.

عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ فَاَبَيْنَ اَنْ يَّحْمِلْنَهَا

آسمانونوته | او زمکي ته | اوغرونو ته | نو انکار اوکړو هغوئ | چي بار کړي دغه امانت |

او غرونو ته (دحکم منلو د ذمه وارئ اوچتولو) امانت پيش کړو | نو ټولو ددې (

وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْاِنْسَانُ ۭ اِنَّهٗ كَانَ ظَلُوْمًا

اواويريدل | دهغې نه | او بار کړو هغې لره | انسان | بيشکه هغه | دې | ډير ظالم |

غتې) ذمه ورائ دقبلولو نه انکار اوکړو | اوددې نه ويريدل | او صرف انسان وو چي ذمه وارئ ئې قبوله کړه | هغه

جَهُوْلًا ۝ لِّيُعَذِّبَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ

ډير ناپوهه (غير ذمه وار) | دپاره ددې چي عذاب ورکړي | الله | منافقانو سره ته |

بيشکه ډير ظالم اونادان دې | نو نتيجه ئې دا شوه | چي الله ﷻ منافقانو سره

وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ وَيَتُوْبَ اللّٰهُ

او منافقانو ښځو ته | او مشرکانو سړو ته | او مشرکانو ښځو ته | او توبه قبوله کړي الله |

اومنافقانو ښځو او مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو ته سزا ورکوي | او دمومنانو

عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ۝

د مومنانو سړو | او دمومنانو ښځو | او دې الله | ښونکي | مهربانه |

سړو اودمومنانو ښځو توبه به قبوله کړي | اوالله ﷻ ښونکي مهربان دې

**قوله تعالى:- وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۝**

**مومن له نيغه خبره کول پکاردي:-** الله ﷻ خپلومؤمنانوبنديگانوته دخپلې تقوى هدايت ورکوى هغوى ته فرمائى چه داسې دې د هغه عبادت کوى لکه چه هغه په خپلوسترگوباندې وينى اوخبره بالکل صفا نيغه رښتيااوښکلې کوى. کله چه هغوى په زړه کښې تقوى په ژبه صداقت اختيارکړى نود دې په بدله کښې الله ﷻ هغوى ته د نيکواعمالوتوفيق ورکوى اود هغوى به ټول گناهونه معاف کړي. بلکه په راتلونکى وخت کښې به هم هغه له د استغفار توفيق ورکړى دې د پاره چه گناه ئې باقى پاتې نه شي. د الله ﷻ اورسول الله ﷺ تابعدار اورښتونى کامياب دى د دوزخ نه لرې اوپه جنت سره کامياب دى. يوه ورځ دماسپښين د مانځه نه پس حضوراکرم ﷺ دسړوطرفته متوجه شو وئى فرمائيل ماته دالله ﷻ حکم شوې دې چه زه تاسو ته د الله ﷻ نه د ويريدلو اود نيغې خبرې کولوحکم درکړم. بيائى ښځو طرف ته توجه اوفرمائيله اوهم دائى اوفرمائيل. (ابن ابى حاتم) ([1])دابن ابى الدنياکتاب التقوى کښې دى حضوراکرم ﷺ به هميشه په خطبه کښې داآيت تلاوت فرمائيلو خود دې سندغريب دې. د ابن عباس رضي الله عنه قول دې د چاچه داخبره خوښه وى چه خلق دې دهغه عزت اوکړى هغه له دالله ﷻ نه ويريدل پکاردى.عکرمه رحمه الله فرمائى قول سديد لااله الا الله دې.خباب رحمه الله فرمائى رښتونې خبره قول سديد دې.مجاهد رحمه الله هره يوه نيغه خبره قول سديد دې.داټول په قول سديد کښې داخل دى.

**قوله تعالى:- اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**

**د الله ﷻ د امانت نه څومره مراد دى؟:-** دحضرت ابن عباس رضي الله عنه بيان دې چه د امانت نه مراد دلته اطاعت دې داپه حضرت آدم عليه السلام باندې دپيش کولونه وړاندې په زمکه آسمانونواوغرونوباندې پيش کړې شو

[1] احمد:۳۹۱/٤مجمع الزوائد:۹۷/۷،

خو هغوي د امانت بوج اوچت نه کړې شو او خپله معذوري او مجبوري نې ښکاره کړه. الله ﷻ اوس دا حضرت آدم (عليه السلام) ته پيش کړو چه دا ټول انکاري شو اوس ته څه وائې. هغه تپوس اوکړو اې الله په دې کښې خبره څه ده؟ ونې فرمائيل که په ځاې دې راوړو نو ثواب دې او که بدى دې اوکړه نو سزا به خورې. هغه ونيل زه تياريم. د هغوى نه داهم روايت دې د امانت نه مراد فرائض دى. په نورو باندې چه کوم پيش کړې شوى وو دا د حکم په توګه نه وو بلکه جواب نې ترې غوښتې وو نو د هغوي انکار اظهار د مجبورنى ګناه نه وه. بلکه په دې کښې د يو قسم تعظيم وو چه سره د پوره طاقت د الله ﷻ د ويرې نه رېږيدل چه هسې نه پوره نې نه کړې شو او اونه وهلې شو. خو انسان چه ساده وو هغه د امانت دا بوج په خوشحالئى خوشحالئى سره اوچت کړو(۱) هم د هغوى نه داهم روايت دې چه د مازيګر وخت سره نيزدې نې دا امانت اوچت کړې وو. اود ماښام نه وړاندې ترې خطا اوشوه(۲) د حضرت ابى (رضي الله عنه) بيان دې چه د ښځې پاکدامنى هم د الله ﷻ امانت دې(۳) د قتاده (رحمه الله) قول دې دين فرائض حدود ټول د الله ﷻ امانت دې(۴) د جنابت غسل هم د بعضو په نيز امانت دې. زيد بن اسلم (رحمه الله) فرمائى درې څيزونه د الله ﷻ امانت دې د جنابت غسل، روژه او مونځ. مطلب دا چه دا ټول څيزونه د الله ﷻ په امانت کښې داخل دى. ټول احکام په ځاې راوړل د ټولو ممنوعاتو نه ځان ساتلو باندې انسان مکلف دې څوك نې چه په ځاې راوړى ثواب به مومى او کوم ځاې چه ګناه اوکړى سزا به خورى. امام حسن بصرى (رحمه الله) فرمائى خيال کونى آسمان سره د دومره پوخوالى ښائست اود نيکانو فرښتو د مسکن کيدو سره د الله ﷻ امانت برداشت نه کړې شو کله چه هغوى دا معلومه کړه چه که په خانى رانوړل نو عذاب به وى. زمکې د صلاحيت او سختوالى اوږدوالى پلنوالى او ويريدله او خپله عاجزى ښکاره کړه. غر سره د خپل اوچتولى طاقت او سختوالى دې نه اورېږيدو او خپله کمزورى نې ښکاره کړه.

**اول اسمان، بيا زمکې او بيا غرونو عجز ښکاره کړې وو:-** مقاتل (رحمه الله) فرمائى اول آسمان جواب ورکړو او ونى ونيل چه هسې خو مونږ تابعدارى يو خو دا زمونږ دوس خبره نه ده څکه چه د نه پوره کولو په صورت کښې خطره ډيره زياته ده. بيائى زمکې ته اوونيل چه که پوره دې کړو نو ډير فضل اوکرم به درباندې اوکړم. خو هغې ونيل چه هسې خو هر قسم تابعداره يم خو دا چه اووئيلې شو عمل اوکړه نو دا زما د وسعت نه بهر دى. بيا غرونو ته اووئيلې شو هغوى هم جواب ورکړو چه نافرمانى خو مونږ کولې نه شو که امانت دې راباندې واچولو اوچت به نې کړو خو دا زمونږ د وس کار هم نه دې. مونږ معاف کړه.

**ادم (عليه السلام) قبول کړو:-** بيا حضرت آدم (عليه السلام) ته اووئيلې شو هغه ونيل اې الله که پوره مې کړو نو څه به راکوې؟ ونې فرمائيل لويه بزرګى او جنت به ملاويږى رحم اوکرم به وى. او که پوره تابعدارى اونه کړې شوه او نافرمانى دې اوکړه سخته سزا به وى او په اور کښې به واچولې شې. هغه ونيل اې الله ﷻ منظور ده. مجاهد (رحمه الله) فرمائى چه ما ستورو له ځاې ورکړو فرښتې مې اوچتې کړې خو دا نه شم اوچتولې. دا خو فرائضو تحمل دې د کوم چه ماکښې طاقت نشته. زمکې ونيل په ما کښې دې ونې اوکرلې دريابونه دې جارى کړل خلق دې آباد کړل. خو دا امانت زما د وس کار نه دې. زه د فرضو پابند کيدو سره د ثواب په اميد باندې د عذاب احتمال نه شم اوچتولې. غرونو هم دغه اوونيل. خو انسان دا په ټوپ وهلو سره قبول کړل. بعضې رواياتو کښې دى چه تردريو ورځو پورې دا سوال زارى کيدله او خپله بې وسى نې خودله. خو انسان دا په خپل سرباندې واخستل. الله ﷻ هغه ته اوفرمائيل اوس واوره که ته نيك نيتې

(۱) الطبرى: ٣٣٧/٢٠.
(۲) حاکم: ٤٢٢/٢ وسنده حسن.
(۳) الطبرى: ٣٣٨/٢٠، حاکم: ٤٢٢/٢.
(۴) الطبرى: ٣٣٩/٢٠.

وي نوزماامدادبه همیشه تاسره وی.ستاپه سترګوباندي زه دوه بنړ (دسترګو وینښته) کوم زما د خفګان دځیزونونه ته دا رابندوه.زه ستاپه خُله باندي دوه شونډي جوړوم کله چه هغه زمادمرضئی خلاف خبري کول غواړی ته دابندوه. ستا د شرمګاه د حفاظت د پاره زه جامي درلیګم زماد مرضئی خلاف ته دامه کولاووه.زمکي اوآسمان د ثواب اوعذاب نه انکاراوکړو اوپه فرمانبردارئی کښي مسخر پاتي شو خو انسان دا اوچت کړل.په یوبالکل غریب مرفوع حدیث کښي دی امانت او وفا په انسان باندي د نبیانو معرفت نازل شو د الله ﷻ کلام دهغوی په ژبوکښي نازل شو د نبیانو په طریقوسره هغوی هر نیك او بد معلوم کړو.د هرسړی نیکي او بدی ورته معلومه شوه. یادساتئی د ټولونه اول په خلقو کښي امانتداری وه.بیادوفا اووعدي ساتلوذمه واری پوره کول وو.دامانتدارئی تت غونډي نشان دخلقو په زړونو باندي پاتي شو.کتابونه دهغوی په لاسونوکښي دی.عالم عمل کوی اوجاهل پوهیږی خو خان ني ناجاره کړي دي.اوس دا امانت اووفا ماته اوزما امت ته راورسیده یادساتئی چه الله ﷻ هم هغه هلاك کوی چه خپل خان په خپله هلاك کړی. دا پریږدی اوپه غفلت کښي پریوځی. خلقو هوښیار اوسئی ګورئی خیال کوئی د شیطانی وسوسونه بچ اوسئی. الله ﷻ تاسو ازمیښت کوی چه په تاسو کښي د نیکواعمالووالاځوك دي.حضوراکرم ﷺ فرمائی چه کوم سړي سره د ایمان نه دا څیزونه راوړی جنت ته به خي. پنځه وخته د مونځ حفاظت کونکي وی اودس رکوع سجده اود وخت سره زکوة ادا کوی د زړه په خوشحالئی سره د زکوة پیسي راوباسي. واورئی والله دا بغیرد ایمان نه نه شی کیدي. او امانت ادا کوئی.

**د امانت د ادا کولو مطلب:-** دحضرت ابوالدرداء ﷺ نه تپوس اوشوچه د امانت ادائیګئی څه مراد دي؟ وئی فرمائیل د جنابت غسل. نو الله ﷻ بنیادم باندي په خپل دین کښي د یوڅیزدي نه علاوه امانت نه دي ورکړي[1]تفسیر ابن جریرکښي دی رسول الله ﷺ فرمائی د الله ﷻ دلاري قتل ټول ګناهونه معاف کوی.ولي دامانت خیانت نه ختموی.دي خیانت کونکوته به دقیامت په ورځ ونیلي شي لاړشئی د هغوی امانتونه اداکړئی. دوی به جواب ورکړي اي الله د کوم خایٔ نه ئی اداکړو؟ دنیاخولاړه دري خل به داسوال اوجواب کولي شي. بیا به حکم کولي شي چه دوی د دوی مورهاویه له بوځئی فرښتي به ورله دیکي ورکوی راګذاربه ئي کړي. تردي چه هغوی به د دي بیخ ته اورسي نودوی ته به هم د دي امانت په شکل کښي د دوزخ اور په نظر راشي دوی به داواخلي پاس به راخیژي.کله چه غاړي له راورسي نوپښه به ئی اوخوئیږي بیابه وړپریوځي اود دوزخ لاندي پوري به راګذارشي. بیابه ئی راولي اوبیابه وړپریوځي .همیشه به په دي عذاب کښي وی.امانت په اودس کښي هم شته اوپه مانځه کښي هم.امانت په خبرو اتروکښي هم دي اود دي ټولونه زیات امانت په دي څیزونوکښي دي چه چاسره د امانت په توګه کیخودي شي.

د حضرت براء ﷺ نه سوال کولي شي چه دا ستارور عبدالله بن مسعود ﷺ څنګه حدیث بیانوی؟ نوهغه دده تصدیق کوی چه اوتیك دي[2]دحضرت حذیفه ﷺ نه روایت دي چه د رسول الله ﷺ نه مادوه احادیث اوریدلی دی. یوخو ما په خپلو سترګو باندي اولیدل اود دویم دښکاره کیدو انتظار دي. یو خو دا چه هغوی اوفرمائیل امانت دخلقو په جبلت کښي نازل شوي. بیا قرآن نازل شو بیااحادیث بیان شو بیا حضورﷺ د امانت د اوچتیدو باره کښي اوفرمائیل انسان به اوده شي چه دهغه دزړه نه به امانت اوچت کړي شي اوداسي نښه به ئي پاتي شي لکه چه په پښه باندي چرته داور سروټکه راپریوځي.داسي به خلق لین دین اواخستل اوخرڅول کوی.خو تقریباً یوکس به هم ایماندار نه وی. تردي چه مشهوره به

---

[1]) ابوداؤد کتاب الصلاة بالمحافظة علی الصلوات:۴۲۹،مجمع الزوائد:۴۷/۱.
[2]) الطبري: ۳۴۰/۲۰وسنده ضعيف بطوله واصل الحديث سنده حسن.

شی چه فلانكې قبیله كښې امانتداردې اوتردې پورې به ونیلې شی چه داسړې څومره عقل مند هوښیار اود فراست والا دې سره د دې چه دهغه په زړه كښې به د اورى د دانې برابر هم ایمان نه وى. حضرت حذيفه ﷺ فرمانى چه د دې نه وړاندې خو به ما هريوسره قرض دار كولو ځكه چه كه مسلمان وى نوهغه به ماله خپل حق پخپله راكړى اوكه يهودى نصرانى دې نواسلامى حكومت به نى ماله راكوى. خواوس صرف فلانكى فلانكى ته قرض وركوم باقى مې بندكړې دې. (۱)

**څلور خبرې:-** مسنداحمدكښې د رسول الله ﷺ فرمان دې څلورخبرې چه په تاسو كښې وى بياكه ټوله دنيا هم وفات شى نوتاته هيڅ نقصان نشته. د امانت حفاظت او د خبرو اترو صداقت حسن اخلاق او حلال رزق. (۲)

**د امانت قسم خوړل:-** دحضرت عبدالله بن مبارك رحمه الله كتاب الزهدكښې دى جبله بن سحيم حضرت زياد سره وو اتفاقى د هغوى د خلې نه په خبروكښې دا اووتل قسم دې د امانت په دې باندې حضرت زياد رحمه الله په ژړا شو اوډير ئى اوژړل. زه اوويريدم چه مانه چرته لويه ګناه اوشوه. ماوئيل څه هغه دا مكروه ګڼړل؟وئى فرمائيل اوحضرت عمر بن خطاب ﷺ خوبه داډيرمكروه ګڼړلو اود دې به ئى منع فرمائيله. ابوداؤد كښې دې رسول الله فرمائى هغه زمونږ نه نه دې څوك چه د امانت قسم اوخورى(۳)امانت دارى كوم چه حضرت آدم ﷺ اوكړو د دې به دانتيجه وى چه منافق ښځې اوسړې او مشرك ښځې اوسړې يعنى هغه چه په ظاهره مسلمان اوپه باطن كښې كافر وو اوهغه چه دننه اوبهر ټول كافر دى هغوى ته خوبه سخته سزا ملاويږى اوپه مؤمنانو ښځو اوسړو باندې به دالله ﷺ رحمت نازل شى. څوك چه الله ﷺ اودهغه فرښتې اودهغه رسولان منى اودالله ﷺارښتونى فرمان برداروى الله ﷺ ښښونكې اومهربان دې.

**(الحمدلله)** د سورت احزاب تفسير ختم شو.

.............................

| آياتونه | سورة سبأ مكية وهي اربع وخمسون اية وست ركوعات | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۵۴ | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | ۶ |

| وَمَا | فِي السَّمٰوٰتِ | مَا | لَهٗ | الَّذِيْ | لِلّٰهِ | اَلْحَمْدُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او هغه څه | چي په آسمانونو كښى دى | هغه څه | چى هغه لره دى | هغه الله | الله لره ده | ټوله ثناء |

ټول تعريفونه صرف يو الله ﷺ لره دى اچى دهر هغه څه مالک دى چى په آسمانونو

| وَهُوَ الْحَكِيْمُ | فِي الْاٰخِرَةِ ط | وَلَهُ الْحَمْدُ | فِي الْاَرْضِ |
|---|---|---|---|
| او هغه خاوند دحكمت دى | په آخرت كښى (هم) | او هغه لره ده ثنا | چى په زمكه كښى دى |

اوزمكه كښې دى| په دنيا او آخرت كښې ټول تعريفونه هغه لره دى||وهغه صاحب دحكمت اوپه

---

(۱) صحيح بخارى كتاب الرقاق باب رفع الامانة:۶۴۹۷، صحيح مسلم:۱۴۳، ترمذى:۲۱۷۹، ابن ماجه:۴۰۵۳، احمد:۵/۳۸۳، ابن حبان:۶۷۶۲، بيهقى: ۱۰/۱۲۲.

(۲) احمد:۲/۱۷۷

(۳) ابوداؤد كتاب الايمان والنذور باب كراهية الحلف بالامانة: ۳۲۵۳، وسنده صحيح، ابن حبان: ۱۳۱۸، احمد:۵/۳۵۲.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْخَبِيرُ① | يَعْلَمُ | مَا | يَلِجُ | فِي الْأَرْضِ | وَمَا | يَخْرُجُ |
| او خبردار دی | معلوم دی هغه ته | هغه څه | چی ننوځی | په زمکه کښې | او هغه | چې رااوزی |

هر څه خبر دې | هغه ته ټول معلوم دی | هر هغه څه کوم چې زمکه کښې ورننوځي |او هر هغه څه کوم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْهَا | وَمَا | يَنْزِلُ | مِنَ السَّمَآءِ | وَمَا | يَعْرُجُ | فِيهَا ط |
| دهغې نه | او هغه | چې نازلیږی | داسمان نه | او هغه | چې خیژی | په هغې کښې |

چې ترې بهر راوځی | اوکوم چې د آسمان نه راکوزیږی | او کوم چې اسمان ته خیژی

| | | |
|---|---|---|
| وَهُوَ | الرَّحِيمُ | الْغَفُورُ② |
| او هغه | رحم کونکې | ښښونکې دې |

اوهغه ډیر رحم کونکې ډیر زیات ښښونکې دې |

قوله تعالی:- الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

ټول تعریفونه هم د الله ﷻ د پاره دی:- ددنیااوآخرت ټول نعمتونه اورحمتونه دالله تعالی د طرف نه دی.دټولوحکومتونوحاکم هم هغه یودې. د دې د پاره دهرقسم اوهریو تعریف اوثنا مستحق هم هغه دې. هم هغه معبوددې اودهغه نه بغیربل څوك دعبادت لائق نشته.هم دهغه دپاره ددنیااوآخرت حمد او ثنا ضروری ده او هم د هغه حکومت دې اوهم د هغه طرف ته به ټول واپس کولې شی. په زمکه او آسمان کښې چه څه دی ټول د هغه ماتحت دی څومره چه هم دی ټول د هغه غلامان دی. هم د هغه په قبضه کښې دی. په ټولوباندې تصرف هم دهغه دې. لکه چه بل آیت کښې دی ﴿وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَىٰ﴾[1] په آخرت کښې به هم د هغه تعریفونه وی. هغه په خپلو ټولوافعالو اقوالواوتقدیر ټولوکښې دحکمت والا دې اوداسې خبردار دې چه د هغه نه هیڅ یو څیز پټ نه دې د چانه چه یوه ذره پټه نه ده څوك چه په خپلواحکاموکښې حکیم څوك چه دخپل مخلوق نه خبردارخومره څاڅکې چه دآسمان نه د باران زمکې ته ځی څومرد دانې چه په هغې کښې کرلې شی دهغه دعلم نه بهرنه دی. کوم چه د زمکې نه راټوکیږی راوځی هغه هم هغه پیژنی دهغه دمحیط وسیع اوبې حسابه علم نه یوڅیز هم لرې نه دې. د هر یوڅیز شمیرکیفیت اوصفت هغه ته معلوم دې. دآسمان نه چه کوم باران راوریږی د هغې د څاڅکو شمیر هم د هغه په علم کښې محفوظ دې. کوم رزق چه دهغه ځائ نه راکوزیږی.دهغه په علم سره چه کوم نیك اعمال پورته آسمان ته خیژی هغه هم د هغه په علم کښې دی.هغه په خپلو بندیگانوباندې پخپله د دې نه هم زیات مهربان دې په دې وجه د هغوی د گناهونونه دخبریدوسره هغوی له زرسزا نه ورکوی بلکه مهلت ورکوی چه هغوی توبه اوباسی اوبدی پریږدی د رب طرف ته رجوع اوکړی. بیاغفوردې دیخوا بنده ټیټ شو وئی ژړل دیخوائی ښښنه اوکړه معاف ئی کړو توبه کونکې رټلې نه شی توکل کونکې نقصان نه شی اوچتولې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقَالَ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | لَا تَأْتِينَا |
| او وائی | هغه کسان | چې کافران دی | ولې نه راځی مونږ ته |

| او کافران وائی چې په مونږ به

[1] ۹۲/اللیل:۱۳.

السَّاعَةُ ط قُلْ بَلٰى وَرَبِّىْ لَتَاْتِيَنَّكُمْ ۙ لا

قيامت | ورته اووايه | چې هو | قسم دې په رب زما | چې خامخا به راځي تاسو ته |

دقيامت نه راځي | (ائي پيغمبره) ته ورته اووايه چې ولې به نه راځي ؟ | زما دې په رب قسم وي

عٰلِمِ الْغَيْبِ ۚ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِى السَّمٰوٰتِ

چې عالم دې په غيب باندې | نۀ پټيږي | دهغه نه | په اندازه | ديوې ذرې | په اسمانونو كښې |

چې په غيبو عالم دې | چې خامخا به راځي | د هغه نه په زمكه او اسمانونو كښې يوه ذره هم پټه نه ده |

وَلَا فِى الْاَرْضِ وَلَاۤ اَصْغَرُ مِنْ ذٰلِكَ وَلَاۤ اَكْبَرُ اِلَّا فِىْ كِتٰبٍ

اونۀ په زمكه كښې | او نۀ وړوكې | دهغې نه | اونۀ لوئ | مګر دى | په يو كتاب |

اوددې (ذرې) نه وړوكې اونه ترې نه غټ څيز | خودا ټول هرڅه په يو ښكاره كتاب ..............

مُّبِيْنٍ ۙ لِّيَجْزِىَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

ښكاره كښې | دپاره ددې چې بدله وركړي الله | هغه كسانو ته | چې ايمان ئې راوړې دې |

(لوح محفوظ) كښې درج دى | د دې دپاره چې الله ﷻ هغه مومنانو ته اجر وركړي

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ط اُولٰٓئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ۝

او عملونه كوي نيك | دا كسان چې دى | ده دپاره ددوئ | ښښانه | او رزق | عزتمند |

څوك چې نيك كارونه كوي | هم دا هغه خلق دى | چې دوئ دپاره مغفرت او دعزت روزي ده

وَالَّذِيْنَ سَعَوْ فِىْۤ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ

او هغه كسان | چې كوشش كوي | په ايتونو زمونږ كښې | چې شكست وركونكي دى هغې لره |

اودا هغه خلق دې كوم چې زمونږ د ايتونو د ناكامه كولو كوشش كوي | هغوئ

اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ۝ وَيَرَى الَّذِيْنَ

دا كسان چې دى | دې دپاره ددوئ | عذاب | دعذاب دردناك نه | اووينې هغه كسان

ته به د «رنګ په رنګ» سختو نه ډك دردناك عذاب وركولې شي | او كومو خلقو

اُوْتُوا الْعِلْمَ الَّذِىْۤ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ

چې وركړې شوې دې هغوئ ته علم | چې هغه كتاب | چې نازل كړې شوې دې | تاته | دطرفه درب ستا نه

ته چې علم وركړې شوې دې | هغوئ پوهيږي چې كوم (كتاب) ستا د رب دطرفه په تانازل شوې دې

هُوَ الْحَقَّ ۙ لا وَيَهْدِىْۤ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ۝

چې هغه حق دې | او ښودنه كوي | لارې ته | دغالب | او ستائيلي شوي خدائي |

هغه رښتوني دې | اودا كتاب (خلقو ته ، د غالب اودتعريفو لائق الله ﷻ لار ښائي |

**قوله تعالى:- وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا**

**قيامت حق دې اوپه دې باندې دالله ﷻ دخپل ذات قسم:** پوره قرآن پاك كښې درې آياتونه دى چه كوم كښې چه دقيامت په راتلوباندې قسم خوړلوسره بيان فرمائيلې شوې دې. يوخوسورت يونس﴿ وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ اَحَقٌّ هُوَ ؕ

﴿قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ ۖ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ﴾ (۱) خلق تانه تپوس کوی چه آیاد قیامت راتلل حق دی؟ ته دوی ته اووایه او او زما درب قسم هغه یقینا حق دې اوتاسوالله تعالی مغلوب کولی نه شئی. دویم آیت هم دادې. اودریم آیت په سورت تغابن کښې ﴿زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا ۚ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ۚ وَذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾ (۲)یعنی د کافرانو دا خیال دی چه هغوی به د قیامت په ورځ نه شی را اوچتولې ته ورته اووایه چه اوزمادرب قسم تاسوبه خامخا را اوچتولې شئی. بیابه تاسو ته دخپلو اعمالوخبر درکړې شی اوداخو الله ﷻ ته ډیرآسان دی.نودلته نی هم دکافرانوانکارد قیامت نه ذکر کړوخپل نبیﷺ ته نی دهغې قسمیه جواب اوخودلو بیاد دې نورتاکید کولو سره فرمانی چه هغه الله ﷻ چه عالم الغیب دې دچانه چه یوه ذره پټه نه ده هرڅه د هغه په علم کښې دی سره د دې که هډوکی سخا شی د هغې ذرې ګډې وډې شی. خوهغه چرته دی؟څومره دی؟ټول هغه پیژنی. هغه د دې ټولو په راجمع کولویاندې قادر دې لکه څنګه چه نی اول پیداکړی دی هغه د هریوڅیز پیژندونکې دې اوټول څیزونه هغه سره د دهغه په کتاب کښې لیکلې شوی دی. بیا نی د قیامت د راتلو حکمت بیان کړو چه ایماندارانو ته به د هغوی دنیکئی بدله ملاویږی هغوی له به مغفرت اورزق کریم ورکولې شی. اوچاچه د الله ﷻ د خبرو نه ضد اوکړو درسولانو نی اونه منل ډیر خرابې اوسختې سزاګانې به وی.نیکان مؤمنان به بدله او بدکاره کافران به سزا خوری. لکه چه فرمانی دوزخیان او جنتیان یوشان نه دی. جنتی کامیاب او مقصد حاصلونکی دی.

قوله تعالی:-﴿لِّيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾

د قیامت راتلو کښې حکمت:-یوبل آیت کښې دی ﴿أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِينَ فِي الْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِينَ كَالْفُجَّارِ﴾ (۳)یعنی مؤمن اومفسد متقی او فاجر برابر نه دی. بیانی د قیامت یوبل حکمت بیان کړوچه ایماندار به هم دقیامت په ورځ دنیکانو بدله اودبدانوسزا ګوری نودعلم القین نه به عین الیقین حاصل کړی اوهغه وخت به وائی زمونږ د رب رسول ﷺ مونږ له حق راوړی وو.هغه وخت به ونیلې شی چه داده هغه وعده کومه چه رحمن کړې وه اورسولانو رښتیا رښتیا ونیلی وو. الله ﷻ خولیکلې ووچه تاسو به دقیامته پورې اوسیږئ نی نواوس دقیامت هغه ورځ راغله اوالله تعالی عزیز دې. یعنی اوچت د عزتونووالا دلوئ حکومت والا ډیرعزت والا دپوره غلبې والا نه په هغه د چا وس اونه د چازور هریوڅیز دهغه په وړاندې ښکته اوعاجز.هغه د تعریف قابل دې پخپلو اقوالو افعالوشرع او فعل کښې دې ټولو کښې دهغه ټول مخلوق د هغه ثناخوان دې. جل وعلا.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ الَّذِينَ | كَفَرُوا | هَلْ نَدُلُّكُمْ | عَلَىٰ رَجُلٍ | يُنَبِّئُكُمْ |
| اووائی هغه کسان | چی کفر نی کړی دی | ایا مونږه او ښایو تاسو ته | یوداسې سړی | چی خبردرکوی تاسو ته |
| اوکافران (یوبل ته) | اووئیل | چی راشئ چی داسې سړې | درته اوښایو | چی هغه درته داخبردرکوی |
| إِذَا | مُزِّقْتُمْ | كُلَّ مُمَزَّقٍ | إِنَّكُمْ | لَفِي خَلْقٍ |
| کله چی | ذرې ذرې کړې شئ تاسو | په کامل ذره کیدوسره | نو بیشکه تاسو به | خامخا په پیداوښت |
| چی په څه وخت کښې به تاسو | ریزه ریزه شئ | | نوبیا به تاسو دوباره راپیدا کولې شئ | |

---

(۱) ۱۰/یونس:۵۳.

(۲) ۶۴/التغابن:۷.

(۳) ۳۸/ص:۲۸.

جَدِيْدٍ ۚ اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ

نوی کنبی (بیا راپیدا شی) | معلومه نه ده چې ایا تړی | په الله پورې | دروغ | یا په دهٔ

.........ایا دهٔ په الله ﷻ باندې دروغ جوړ کړی دی | اوکه لیونی شوې دې

جِنَّةٌ ؕ بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ فِي الْعَذَابِ

لیونتوب دې | نه بلکه هغه کسان | چې ایمان نه راوړی | په اخرت باندې | په عذاب کنبی به وی

(په دې کنبې یوه هم) نه ده | بلکه کوم خلق چې په اخرت یقین نه ساتی | هغوئ په عذاب کنبې او په

وَالضَّلٰلِ الْبَعِيْدِ ۝۸ اَفَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ

او په گمراهئ | لرې کنبی دی | ایا نه گوری دوئ | هغې ته | چې مخکنبی ددوئ دی

اوږده گمراهئ کنبې پراته دی | ایا دوئ اسمان او زمکې ته نه دی کتلی

وَمَا خَلْفَهُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ

اوهغې ته | چې روستو ددوئ دې | دآسمان نه | اودزمکې نه | که مونږه اوغواړو | نو ډوبه به کړو

چې ددوئ نه وړاندې او روستو خواره شوی دی | که چرې مونږ اوغواړو نو دوئ به

بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ ؕ

دوئ | په زمکه | یا به راواغورزوو | په دوئ باندې | یوه ټوټه | دآسمان نه

په زمکه کنبې ننبخ کړو | یا به په دوئ د آسمان نه ټکړه راواغورزوو |

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۝۹

بیشکه | په دې کنبی | خامخانبنه ده | دپاره دهر بنده | رجوع کونکی |

بیشکه په دې کنبې دهغه بنده دپاره دعبرت ننبه ده چې الله ﷻ طرفته رجوع کوی

**قوله تعالی:- وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا هَلْ نَدُلُّكُمْ**

**په بیاراپاسیدو باندې دکافرانو ټوقې:** کافران اوملحدان چه د قیامت راتلل محال گنړی اوپه دې باندې به نبی د الله ﷻ دنبی ﷺ پورې ټوقې کولې. دهغوی دکفریه کلماتو ذکرکولې شی چه هغوی به په خپل مینځ کنبې ونیل واورنې په مونږ کنبې یوصاحب دې چه فرمانې چه کله مړه شو اوخاورې شو اوچورې چورې اوذره ذره شو د هغې نه پس به مونږ راژوندی کولې شو نودې سړی باره کنبې خو دوه خیاله کیدې شی. یاخودا چه په ښه هوش سره هغه په قصدسره د الله ﷻ په ذمه یو دروغ وانی اوکوم چه هغه نه دی فرمائیلی دهغه طرف ته نسبت کولوسره وانی اوکه دا نه وی نود هغه دماغ خراب شوی دی لیونې دې. بغیر سوچ اوفکر چه څه نی په زړه کنبې راغله په ژبه باندې وراوخیژول ونی ونیل.

**قوله تعالی:- بَلِ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ**

**د کافرانو د خبرې جواب او عقلی دلیل:** الله ﷻ هغوی ته جواب ورکوی چه دا دواړه خبرې نه دی. حضور اکرم ﷺ رښتونې دې نیك دې لارموندونکې هوښیار دې دباطنی اوظاهری بصیرت والا دې. خوپه دوی څه اوکړې شی چه دا منکر خلق اوجاهلان د ناپوهئ نه کاراخلی. اوپه غوراوفکرسره د خبرې بیخ ته د رسیدوکوشش نه کوی. یوانکارنی زده کړې دې چه هغه خائ په خائ اوبې خایه استعمالوی. دکوم په وجه چه حق خبره او نیغه لاردهغوی نه پاتې شی اودیر لرې لاړشی اوځی. آیا دهغه په قدرت کنبې تاسو

څه کمې ګورنې چاچه محیط آسمان اوبسیط یعنې کولاوزمکه پیداکړه؟چرته چه ځي نه داسمان سورې ختمیږي اونه د زمکې فرش.لکه چه ارشاد دې ﴿وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِأَيْدٍ وَّإِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ۝ وَالْأَرْضَ فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ۝﴾([1]) مونږ آسمان په خپلو لاسونوسره جوړکړو اومونږ د وسعت والا یو.زمکه هم مونږ خوره کړه اوهم مونږ ښه خورونکي یو.

دلته نې هم اوفرمائیل چه وړاندې ګوره اوروستوګوره ته دغه شان ښي طرف ته نظر اوکړه او ګس طرف ته خیال اوکړه نوکولاوآسمان اوارته زمکه به په نظرراشي. د دومره لوئ مخلوق خالق په دومره زبردست قدرتونو باندې قادر آیا ستاسو په شان وړوکې مخلقو فناکولوسره بیا په راپیداکولوباندې قدرت نه لري؟ هغه خو قادر دې که غواړي نو تاسو به زمکه کښې ورخښ کړي یا به په تاسو آسمان رامات کړي یقیناستاسوظلم اوګناه هم د دې قابله ده. خود الله ﷻ حکم اومعافي ده چه هغه تاسو ته مهلت درکړې دې. په چاکښې چه عقل وي په چا کښې چه د لرې نه د کتلوماده وي په چاکښې چه د غور اوفکر کولو عادت وي په چاکښې چه د الله ﷻ طرف ته ټیټیدونکې طبیعت وي دچاپه سینه کښې چه زړه او په زړه کښې حکمت اوبه حکمت کښې نور وي نو هغه دا زبردست نښې لیدونه پس دهغه قادر مطلق اوخالق الله ﷻ په دې قدرت کښې هیڅ شك نه شي کولې چه د مرګ نه پس بیا راژوندې کیدل دي. د آسمانونو په شان تنبوان اود زمکو په شان فرش چه چا پیداکړي دي هغه ته د انسان پیداکول ګران دي؟ چا چه هډوکي غوښه اوڅرمن په اول ځل پیداکړه هغه ته د سخاکیدواوذره ذره کیدونه اوشیندلې کیدو نه پس رایوځائ کول راپاسول اوکینول څه ګران دي؟

هم دا نې په بل آیت کښې اوفرمائیل ﴿ أَوَلَيْسَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى أَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ۚ بَلٰى ۚ وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ۝﴾([2]) یعنې چاچه آسمانونه اوزمکې پیداکړې هغه د دوی په شان پیداکولوباندې قادر نه دې؟ بې شکه قادردې بل آیت کښې دی ﴿لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ۝﴾([3]) یعنې د انسانانو د پیدائش نه ډیرګران خود آسمانونواوزمکو پیدائش دې خواکثر خلق بې علمي کوي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا | | | | | | | |
| اوبه تحقیق ورکړې وو مونږه | | | | | | | |
| اوبیشکه مونږداؤد | | | | | | | |
| دَاوٗدَ | مِنَّا | فَضْلًا | يٰجِبَالُ | اَوِّبِيْ | مَعَهٗ | وَالطَّيْرَ | |
| داود له | دطرفه خپل نه | فضل | اے غرونو | ایو کړئ آواز | دهغه سره | اومرغانو ته هم دا حکم دې | |
| ته خپل نعمتونه ورکړي وو | او حکم مو کړې وو .چې،ائي غرونو داؤد ﷺ سره تسبیح لولئ | | | | | | |
| وَاَلَنَّا | لَهُ | الْحَدِيْدَ | اَنِ اعْمَلْ | سٰبِغٰتٍ | وَّقَدِّرْ | | |
| او نر مه کړه مونږه | دپاره دهغه | وسپنه | چې جوړوه | زغرې | او اندازه کوه | | |
| او مارغانو ته هم داحکم وو | اومونږ دهغه دپاره اوسپنه نرمه کړې وه | او حکم مو اوکړو، پوره پوره | | | | | |

[1]) ۵۱/الذاریات:۴۷–۴۸.
[2]) ۳۶/یس:۸۱.الخ
[3]) ۴۰/المؤمن:۵۷.

| |
|---|
| فِي السَّرْدِ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۭ اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ |
| په اوودلو کښې \| او عمل کوئ \| نیك \| بیشکه زهٔ \| په هغه کارونو \| چې کوئ ئې تاسو |
| زغرې جوړوه \| اود کړو جوړولو اندازه مقرر کړئ \| او ښه عملونه کوئ \| بیشکه زه ستاسو عملونه |
| بَصِيْرٌ ۝ |
| لیدونکې یم \| |
| وینم گورم \| |

**قوله تعالى:- وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا ۭ**

**د حضرت داؤد ؑ فضیلت:-** الله ﷻ بیان فرمائی چه هغه په خپل بنده اورسول حضرت داؤد ؑ باندې دنیاوی او اخروی رحمت نازل کړو نبوت ئی هم ورکړو بادشاهی ئی هم ورکړه لښکرې سامانونه طاقت او قوت ئی هم ورکړو بیانی یوه پاکه معجزه داهم ورکړه یوطرف ته د حضرت داؤد ؑ د الله ﷻ ذکر په خوږ آوازسره شروع کړو نویل خوامرغنی اوغرونه هم په وجد کښې راغله. غرونو هم په آوازسره آواز ملاو کړو اوداللہ تعالی حمداوثنائی شروع کړه. مرغوخپلې وزرې خوزول پریخودل اوپه قسم قسم ښکلې ښکلې آوازونو کښې د خپل رب د وحدانیت سندرې ونیل شروع کړې. په صحیح حدیث کښې دی چه دشپې حضرت ابوموسی اشعری ؓ د قرآن پاك تلاوت کولود کوم په اوریدوچه د الله ﷻ رسول ﷺ اودریدو. د ډیروخت پورې اوریدو بیا ئی اوفرمائیل ده ته د حضرت داؤد ؑ د آواز څه حصه ملاوشوې(۱) ابوعثمان نهدی رحمه الله بیان دې والله مونږ د حضرت ابوموسی ؓ د آواز نه خوږ آواز چرته دباجې هم نه دې اوریدلې. **(اوبی)** معنی په حبشی ژبه کښې داده چه تسبیح بیان کړه. خوزمونږ په نیز په دې کښې د نور غورهم ضرورت دې. د عربوپه لغت کښې دا لفظ د ترجیع په معنی کښې موجود دې نوغرونو اومرغوته حکم کیږی چه هغوی دې د حضرت داؤد ؑ د آواز سره خپل آواز هم ملاوکړی. د تاویب یوه معنی د ورځې د تګ هم راځی.

لکه چه (سری) معنی د شپې تګ ته وائی خودامعنی دلته څه ډیر ښه مناسبت نه لری دلته خو هم دا مطلب دې چه دحضرت داؤد ؑ دتسبیح په آواز کښې تاسو هم خپل آواز ملاوکړئی اوپه خوش آوازنی سره درب حمد بیان کړئی. اوپه هغه باندې دافضل اوشو چه دهغه دپاره اوسپنه نرمه کړې شوه. نه هغه ته اوسپنه په بهټئی کښې د اچولوضرورت اونه په سټکونوباندې دوهلوضرورت. په لاس کښې راتلوسره به داسې شوه لکه تار(۲) اوس به د دې اوسپنې نه د الله ﷻ په حکم پخپله زغرې جوړولې بلکه داهم ونیلی شوی دی چه په دنیاکښې د ټولونه اول زغره هم هغوی جوړه کړې وه(۳) هره ورځ به ئی یوه زغره جوړوله اوپه شپږ زره درهمه به خرڅیدله. دوه زره به ئی د کور د خرچې دپاره کیخودلې څلور زره به ئی د خلقو په خوراك څښاك کښې خرچ کولې. د زغرې جوړولوترکیب پخپله الله ﷻ ورخودلې وو چه ټیك ټیك کړئی ساته او حلقې ورې مه ساته چه ټیك نه کینی ډیرې لونې نه وی چه سستې شی. بلکه په ناپ تول اوپه صحیح اندازه باندې کړې اوحلقې وی.

**د داؤد ؑ فرشتې سره ملاقات او دهغه نه تپوس:-** یوځل الله ﷻ یوه فرښته په انسانی شکل کښې نازله کړه. دحضرت داؤد ؑ هغې سره ملاقات اوشو. نوچه څنګه به ئی د نورونه تپوس کولوهم داسې د هغه

---

(۱) صحیح مسلم کتاب صلاة المسافرین باب استحباب تحسین الصوت بالقرآن:۷۹۳،احمد:۳۴۹/۵، بیهقی:۲۳۰/۱۰.

(۲) الطبری: ۳۵۹/۲۰.

(۳) الطبری: ۳۵۹/۲۰.

نه هم تپوس اوکړو. هغه وئیل چه داوُد ﷺ خو ډیر ښه سړی دی خوکه یوه کمی په کښې نه وه نو کامل به وو. هغه په ډیر شوق سره تپوس اوکړوچه هغه څه؟ چه هغه خپل بوج دمسلمانانو په بیت المال باندې اچولې دې. پخپله هم د دې نه اخلی اوخپل بال بچ باندې هم د دې نه خوری. دحضرت داوُد ﷺ په زړه کښې خبره کیناسته چه داسړی ټیك وائی.هم هغه وخت الله ﷻ ته ښکته شو او سوال اوزاری شروع کړه اودعائی اوکړه چه اې الله ماته څه داسې کارروزګار اوښائې په کوم سره چه زما خیته ډکیږی ماته دځه جوړولو چل اوښایه په کوم سره چه زه دومره حاصلوم چه هغه ماله اوزما بال بچ له کافی وی. الله ﷻ هغه ته زغرې جوړول اوخودل اوبیائی په خپل رحمت سره اوسپنه دهغه دپاره بالکل نرمه کړه. د ټولو نه اول زغرې هم هغه جوړې کړې دی.یوه زغره به ئی جوړوله اوخرڅوله نودهغې ګټه به ئی درې حصې کوله.یوه حصه به ئی دخپل خوراك ښښاك د پاره یوه د صدقه کولود پاره او یوه به ئی پریخودله چه د دویمې زغرې جوړولو پورې دالله تعالی بند یګانوته ورکول.

**د داوُد ﷺ بې انتها خو اوازې**:- حضرت داوُد ﷺ ته ذکر ورکړې شوې وو هغه بې مثال وو د الله ﷻ کتاب لوستلو ته به کیناستو آواز وتلوسره به مرغئی ښناور ښاوری غرونه اوکانړی هرڅه په وجدکښې راتلل اوهریوخیز به په سکون او صبرسره د محویت په عالم کښې دهغوی په آواز سره اثراخستونکې جوړیدواوپه کتاب الله کښې به مشغول شو. شیطانانو ټولې باجې د حضرت داوُد ﷺ د ذکر نه ویستې دی.دهغوی دبې مثاله خوږ آواز دا ټول څیزونه نقلونه دی.خپل دا نعمت بیانولو سره حکم ورکوی اوس تاسوله هم پکاردی چه نیك عمل اوکړئی زما د فرمان خلاف اونه کړئی. داډیره خرابه خبره ده چه د چا دومره بې حسابه احسان وی اود هغه حکم منل پریږدی زه ستاسو د عملونوساتندونکې یم ستاسوهیڅ یو عمل لوئ ورو کې نیك اوبدمانه پټ نه دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلِسُلَيْمٰنَ | الرِّيْحَ | غُدُوُّهَا | شَهْرٌ |
| او دپاره دسلیمان | تابع کړه مونږ هوا | دصبامزل دهغې هوا | دیوې میاشتې هومره وو |
| اومونږ هوا د سلیمان ﷺ تابع کړې وه | | چې سحر به ئې هم دمیاشتې هومره | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّرَوَاحُهَا | شَهْرٌ | وَاَسَلْنَا | لَهٗ | عَيْنَ |
| او دمابنام مزل دهغې هوا | دمیاشتې دلارې هومره وو | اواوبیوله مونږ | دپاره دهغه | چینه |
| مزل کولو اودمابنام به ئې هم دمیاشتې هومره مزل کولو | | اومونږ د هغه دپاره دویلې شوې تانبې چینه | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْقِطْرِ ط | وَمِنَ الْجِنِّ | مَنْ | يَّعْمَلُ |
| دویلې کړې شوې تانبې | او تابع کړل مونږ دهغه دپاره دپیریانو نه | هغه څوك | چې کار به ئې کوو |
| جارې کړې وه او بعضې پیریان داسې وو چې د هغه په وړاندې به ئې دالله ﷻ په حکم کار خدمت کولو | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَيْنَ يَدَيْهِ | بِاِذْنِ رَبِّهٖ ط | وَمَنْ يَّزِغْ | مِنْهُمْ | عَنْ اَمْرِنَا | |
| په مخکښې دهغه | په حکم درب خپل سره | او چاچې به مخ واړوو | دهغوئ نه | دحکم زمونږ نه | |
| اوکه چرې په هغوی کښې به چا زمونږ دحکم (یعنی اطاعت دسلیمان) نه کوږ شو(نافرمانی اوکړه) | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| نُذِقْهُ | مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ⑫ | يَعْمَلُوْنَ | لَهٗ |
| نو څکوو به مونږ هغه ته | خوند دعذاب اوور | جوړول به هغوئ | دپاره دهغه |
| نومونږ به هغه ته دجهنم د عذاب مزه اوڅکوو | دې پیریانو به د حضرت سلیمان ﷺ دپاره دده | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا يَشَآءُ | مِنْ مَّحَارِيْبَ | وَتَمَاثِيْلَ | وَجِفَانٍ | |
| هغه څيزونه چې غوښتل به هغه | دنګ دنګ محلونه | او تصويرونه | او لوئ لوښي | |
| دمرضئ څيزونه جوړول الكه دنګ دنګ ځايونه \| او تصويرونه \|او دتالاب غونډې لوئي لوئي خانګونه | | | | |
| كَالْجَوَابِ | وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ | اِعْمَلُوْٓا | اٰلَ دَاوٗدَ | شُكْرًا |
| پشان دتالاب \| او ديګونه په يو ځائي پراته درانه | عمل کوئ | اے آل داود | دشکر | |
| اولوئي لوئي ديګونه اچې (هم په يو ځائي به) پراته وو\| ائي دداؤد ﷺ كورنئ (دالله ﷻ) شكراوباسئ | | | | |
| وَقَلِيْلٌ | مِّنْ عِبَادِيَ | الشَّكُوْرُ | | |
| او لږ دي | دبندګانو زمانه | شكر ايستونكي | | |
| او زما په بندګانو كښې شكر كونكي ډير كم دي | | | | |

**قوله‌تعالى:- وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ**

**په حضرت سليمان ﷺ باندې د الله ﷻ انعامونه:-** په حضرت داؤد ﷺ باندې چه كوم نعمتونه نازل كړې وودهغې بيان كولونه پس دهغه خوئ حضرت سليمان ﷺ باندې چه كوم نعمتونه نازل كړې وو دهغې بيان كولې شي چه دهغه دپاره نی هوادحكم منونكې جوړه كړې وه.دپوره مياشتې فاصله به نی سحر سحروهلې وه اودومره فاصله به ئی ماښام وهله.مثلاً ددمشق نه نی تخت سره دفوج اوسامانونو راوالو زولواوبه لږ ساعت كښې اصطخر ته اورسولو چه دتيز سور د پاره هم د پوره مياشتې سفردې. دغه شان ماښام د هغه ځائ نه تخت والوتلو او هم ماښام كابل ته اورسيدو[1] دتانبې داوبو په شان الله ﷻ د هغوی دپاره چینې روانې كړې وې په كوم كاركښې په كومه طريقه اوپه كوم وخت كښې چه غوښتل بې دخه تكليف نه اخلئی. دا تانبه هم د هغوی د وخت نه په كاركښې راغلې ده.دسدی رحمه الله قول دې چه تر دريوورځو پورې بهيدله.

**د پيريانو او انسانانو قسمونه :-**پيريان نی د هغوی په ماتحتئی كړل.څه چه به هغوی غوښتل خپل وړاندې به نی ترې كارونه اخستل. اوپه هغوی كښې چه به كوم يو پيری دحضرت سليمان ﷺ د حكم تابعداری نه كوله زر به نی په أور كښې سوزولو. ابن ابی حاتم كښې دی رسول الله ﷺ فرمائی د پيريانو درې قسمه دی يود وزرو والا يو قسم د مار په شان اووانی چه دريم قسم هغه دې چه په سورلوباندې سوريږی كوزيږی وغيره. داحديث ډير غريب دې.د ابن انعم رحمه الله نه روايت دې چه د پيريانودرې قسمه دی د يود پاره خو عذاب او ثواب دې يوقسم د زمكه اوآسمان په مينځ كښې الوزی اويوماران اوسپی دی.دانسانانو هم درې قسمونه دی يوهغه كومو ته چه به الله ﷻ دعرش دسورې لاندې ځائ وركوی. په كومه ورځ چه به بغيردهغه سورې نه بل سورې نه وی.اويوقسم په مثال د څاروو دی بلكه د دوی نه هم ډيرخراب اودريم قسم په انسانی صورتونوكښې شيطانی زړه لرونكې.حسن رحمه الله فرمائی چه پيرې د ابليس داولادنه دې اوانسان دحضرت آدم ﷺ د اولادنه دې. په دواړو كښې مؤمن هم دی اوكافرهم په عذاب اوثواب كښې دواړه شريك دی په دواړوكښې ايماندار ولی الله دی.دواړو كښې بې ايمانه شيطان هم دی.

**د محاريب معنی:-** (محاريب) وائی بهترين عمارت ته د كور بهترين حصې ته د مجلس د صدارت ځائ

[1] الطبری: ۲۰/ ۳٦۲.

ته په قول د مجاهد رحمه الله هغه عمارتونوته چه د محل نه ټی کمه درجه وي. ضحاك رحمه الله فرمائي جمات ته. قتاده رحمه الله وائي چه لويولويومحلونواوجماتونه ته.ابن زيد وائي كورته.﴿تماثيل﴾ وائي تصويرونوته دا د تانبې وو د قتاده رحمه الله په قول دا د خاورې او شيشې وو. ﴿جواب﴾ جمع ده د ﴿جابية﴾ جابيه هغه حوض ته وائي په كوم كښې چه اوبه راخې دا په مثال د تالاب وو. ډير لوئ لوئ خانكونه وو دې د پاره چه د حضرت سليمان عليه السلام د فوج دپاره ډيرخوراك په يوځل تياريدې شو اود هغوې په ورانډې راوړې شو. او كلك كړې شوې ديګونه چه د دروندوالي په اخواديخواكولي نه شو. هغه ته الله ﷻ فرمائيلې وو ماچه تاته د دين اودنياكوم نعمتونه دركړي په دې باندې زما شكر اداكړه. شكر مصدر دې بغيرد فعل نه يامفعول له دې. او په دواړو تقديرونوباندې په دې دلالت دې چه شكر څنګه په كوم قول اواراده سره كيږي په فعل سره هم كيږي. لكه يو شاعر وائي:

افادتكم النعماء مني ثلاثة يدي ولساني والضمير المحجبا

يدې كښې هم شاعرد نعمتونوشكر په دريواړو طريقوسره مني. فعل سره ژبې سره اوزړه سره. د حضرت ابوعبدالرحمن سلمي رحمه الله نه روايت دې چه مونځ هم شكردې او روژه هم شكردې اونيك عمل كوم چه ته دالله ﷻ دپاره اوكړې هم شكردې اود ټولونه غوره شكر حمددې[۱]محمدبن كعب قرظي رحمه الله فرمائي شكردالله ﷻ تقوى اونيك عمل دې.آل داؤدبه دواړه قسمه شكر اداكولو.قولاً هم اوفعلاً هم. ثابت بناني رحمه الله فرمائي حضرت داؤد عليه السلام په خپل بال بچ اولاد اوښځوباندې داسې د وختونو په پابندئ سره نفل مونځ تقسيم كړې وو چه هروخت به څوك نه څوك په مانځه كښې مشغول ښكاريدو. بخاري اومسلم شريف كښې رسول الله ﷺ فرمائي الله ﷻ ته د ټولونه خوښ د حضرت داؤد عليه السلام مونځ وو. هغوې به نيمه شپه اوده كيدل دريمه حصه شپه به ئي قيام كولو اوشپږمه حصه به اوده كيدو.دغه شان د ټولو روژونه د الله ﷻ خوښې روژې هم د هغه وې. هغوې به يوه ورځ روژه وه او بله ورځ بغيرروژې. په هغوې كښې يوه خوبي داهم وه چه دښمن سره د جهادپه وخت ئي مخ نه اړولو[۲] ابن ماجه كښې دي د حضرت سليمان عليه السلام مورېي بي هغوې ته اوفرمائيل ګرانه بچې د شپې ډير مه اوده كيږه. د شپې ډير خوب انسان د قيامت په ورځ فقير جوړوي.[۳]

ابن ابي حاتم كښې په دې موقعه باندې د حضرت داؤد عليه السلام يو اوږد حديث نقل دې. هم په دې كتاب كښې داهم روايت دې چه حضرت داؤد عليه السلام د الله ﷻ په حضوركښې عرض اوكړواې رب العالمين ستا څنګه شكر اداكړم شكركول خو پخپله ستايونعمت دې. جواب ملاؤشوداؤد عليه السلام اوس تا زما شكر ادا كړو كله چه تا داااوپيژندل چه دا ټول نعمتونه هم زما د طرف نه دي. بياد يوې واقعه خبر وركولې شي چه بنديګانوكښې شكر كونكي بنديګان ډير كم دي.

| | | |
|---|---|---|
| فَلَمَّا | قَضَيْنَا | عَلَيْهِ |
| پس هر كله چې | حكم اوكړومونږه | په هغه باندې |
| نوڅه وخت چې مونږ په هغه دمرګ | | |

[۱] الطبرى: ۳٦۹/۲۰.

[۲] صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب احب الصلاة الى الله صلاة داؤد:۳٤۱۹-۳٤۲۰، صحيح مسلم: ۱۱۵۹، ابوداؤد:۲٤٤۸، السنن الكبرى:۱۳۲۷،ابن ماجه: ۱۷۱۲.

[۳] ابن ماجه كتاب اقامة الصلوات باب ماجاء فى قيام الليل:۱۳۳۲.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمَوْتَ | مَادَلَّهُمْ | | عَلٰی مَوْتِهٖٓ | اِلَّا | دَآبَّةُ الْاَرْضِ | |
| دمرګ | نو خبر نهٔ کړل هغه پیریانو لره | | په مرګ دهغه باندې | مګر | وینه دزمکې | |
| حکم جاری کړوا نو هغوئ ته بل چانه خویو وینه (چینجی) دمرګ پته ورکړه | | | | | | |
| تَاْكُلُ | مِنْسَاَتَهٗ | فَلَمَّا | خَرَّ | تَبَيَّنَتِ | الْجِنُّ | |
| چې خوړله ئې | همسا دهغه | پس هر کله چې | راپریوتو هغه | نو پوهه شول | پیریان | |
| چې د هغه همسا ئې خوړله نو ځه وخت چې هغوئ راپریوتلو انو پیریانو ته ښکاره شوه | | | | | | |
| اَنْ لَّوْ كَانُوْا | يَعْلَمُوْنَ | الْغَيْبَ | مَا لَبِثُوْا | فِي الْعَذَابِ | | |
| که چرې وې هغوئ | چې پوهیدلې | په غیبو باندې | نو وخت به نهٔ وو تیر کړې هغوئ | په عذاب | | |
| که چرې مونږ دغیبو په کارونو خبر وې نو په دې ذلیل عذاب کښې به (دومره موده) | | | | | | |
| الْمُهِيْنِ | | | | | | |
| سپکونکی کښې | | | | | | |
| نه تیروله | | | | | | |

**قوله تعالٰی:- فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ**

**د حضرت سلیمان ﷺ د مرګ ذکر:-** دحضرت سلیمان ﷺ دمرګ کیفیت بیانولې شی اودا هم چه کوم پیریان دهغوی دحکم لاندې کار روزګارکولو هغوی ته ددوی مرګ څنګه معلوم شوهغه دمرګ نه پس هم لرګی ته اډه وهلې ولاړ وو اودوې هغه ژوندې ګنړلوسرتیټې په سختوسختوکارونوکښې مشغول وو. مجاهد ﷫ وغیره فرمائی چه تقریبًا یوکال داسې تیرشو.دکوم لرګی په ډاډچه هغه ولاړ وو کله چه هغه وینواوخوړلواوهغه ډډشو نو هغوی راپریوتل. اوس پیریانواوانسانانوته دهغوی دمرګ پته اولګیده. ددغه وخت پورې نه پیریانوته اونه انسانانو ته د دې خبرې یقین وو په دوی کښې یوهم په غیبوباندې پیژندونکې نشته.

**یو منکر روایت :-**په یومرفوع منکر اوغریب حدیث کښې دی خوتحقیقی خبره دا ده چه د دې مرفوع کیدل ټیک نه دی فرمائی حضرت سلیمان ﷺ چه به کله مونځ کولو نوخپلې مخې ته به نی یوه ونه لیدله دې نه به ئې تپوس کولو چه ته څنګه ونه ئې؟ستانوم څه دې؟هغې به خودل.هغه به دا په استعمال کښې راوستله.یوځل هغوی دغه شان په مانځه اودریدل اوونه ئې اولیدله نوتپوس ئې ترې اوکړو ستا نوم څه دې؟ هغې ونیل خروب. تپوس نی اوکړود څه د پاره ئې؟ ونیل د دې کور د تباهئی د پاره. بیا هغه دعااوکړه چه یاالله زما دمرګ خبر پیریانوته مه ورکوه دې د پاره چه انسانانوته یقین پیداشی چه پیریان په غیبوباندې نه پوهیږی.اوس هغوی په یولرګی باندې ډډه اولګوله او اودریدو اوپیریانوته ئې ګران ګران کارونه حواله کړه.دهغوی وفات اوشوخود لرګی په امدادباندې هغه هم داسې ولاړوو. پیریانو به کتل اودائی ګنړل چه هغه ژوندې دې. په خپل خپل کارکښې لګیاوو یوکال پوره شو او وینو دغه لرګې خوړلو د پوره کال په تیریدوباندې ئې دغه لرګې اوخوړلو اوس سلیمان ﷺ راپریوتلو او انسانانو ته پته اولګیدله چه پیریان په غیبونه پوهیږی. ګنې ټول کال به په دې مصیبت کښې اخته نه وو.خود دې راوی عطاء بن مسلم خراسانی په بعضې احادیثوکښې نکارت وو.

بل روایت:- دبعضې صحابه کرامو نه روایت دې چه دسلیمان ﷺ عادت ووچه هغوی به کال په کال دوه دوه کاله یا کموزیاته موده په مسجدقدس کښې اعتکاف ته کیناستو په آخری خل دوفات په وخت کښې هم هغوی په مسجدبیت المقدس کښې وو.هرسحر به یوه ونه دهغوی په وړاندې راښکاره کیده هغوی به د دې نه د نوم تپوس کولو دکار تپوس به ئې کولواوهغې به خودل نوهغوی به هم په دې کار کښې اخستله. آخریوه ونه ښکاره شوه کومې چه خپل نوم خروبه اوخودلو ونې ونیل ته د څه مطلب دپاره ئې؟ ونې ونیل د دې جمات د ورانولودپاره حضرت سلیمان ﷺ پوهه شو ونې فرمانیل چه زما په ژوندکښې خودا جمات ورانیدې نه شي. خوته زما د مرګ او ورانیدود پاره ئې. هغوی دا په خپل باغ کښې اولګوله. د جمات په مینځ کښې د یولرګی په ډاډباندې اودریدو او مونځ ئې شروع کړو. هم هلته وفات شو.خوچاته د دې علم اونه شو. شیطانانوتېولوخپل کار کولو چه هسې نه مونږ سستی اوکړو او د الله تعالی رسول ﷺ راشي نومونږ ته به سزا راکړي. دوی دمحراب وړاندې روستوراغله په دوی کښې یو ډیرلوئ حرامي شیطان وو هغه ونیل ګورئې په دې کښې خو وړاندې روستوسوري دی که زه د دې ځائې نه واخله ترهغه ځائې پورې لاړشم نوزما طاقت به اومنئې؟ نوهغه لاړو اوراووتلو. دلته د سلیمان ﷺ واز رانغلو. کتلې خوئې شونه څکه چه سلیمان ﷺ ته به ئې یونظرکتل اومره کیدل به.خود ده په زړه کښې څه خیال شان تیرشو هغه بیاجراءت اوکړو اوجمات ته لاړو. ونې کتل چه هلته په تلوسره هم هغه اونه سوزیدو نود هغه همت نور هم زیات شو. هغه پویونظرسره هغه ته اوکتل نو چه ونې کتل هغه راپړیوتلواووفات شوې وو.اوس راغلو اوټولوته ئې خبراوکړو خلق راغله محراب ئې اوکښتلونو واقعي دالله ﷺ پیغمبرنې ژوندې اونه لیدلو. هغوی ئې دجمات نه راوویستل.دوفات دمودې دعلم حاصلولو دپاره هغوی دا لرګي وینوته وړاندې واچولو. د یوې شپې ورځې پورې چه وینودا څومره اوخوړلو هغه ئې اوکتلونواندازه ئې اولګوله اومعلومه ئې کړه چه د هغوی د وفات پوره کال شوې وو. ټولوخلقوته معلومه شوه چه دې پیریانویه څان خودلو چه دوی په غیبوباندې پوهیږي دا صرف دهوکه وه. ګنې ټول کال ولې په مصیبت کښې اخته وو. د هغه وخت نه پیریان د وینوچینجوته اوبه اوخاوره راوړي. لکه چه د هغوی شکریه اداکوی دائي هم ونیلي وو که چرې تاسو څه خوراك څښاك کولونو مونږ به تاسو ته د ښه نه ښه خوراك رارسولو. خودا خبرې ټولې دبنی اسرائیلو د عالمانودی په دې کښې چه کومې دحق مطابق دی هغه قبولې اوچه دحق خلاف وی نومردود. د دواړو نه جداشئې هغه نه د تصدیق قابلې دی او نه د تکذیب. والله أعلم.

بل روایت:- دحضرت زیدبن اسلم نه روایت دې چه سلیمان ﷺ ملك الموت ته ونیلي ووزما دمرګ به ماته لږ شان وړاندې وائې. حضرت ملك الموت هم داسې اوکړه نوحضرت سلیمان ﷺ په پیریانوباندې یودبغیر دروازې د شیشې مکان جوړولو حکم اوکړو اویدې کښې ئې په یولرګی باندې ډډه اولګوله او مونځ ئې شروع کړو اوداهرڅه د مرګ د ویرې نه وو. حضرت ملك الموت هم په خپل وخت راغلو اوروح ئې ترې قبض کړو.بیادلرګی په ډډه وهلوباندې هغه هم دغه شان یوکال ولاړوو. پیریانو به د اخوادیخوا نه کتلواو هغه ئې ژوندې ګنړلو اود هغه د ویرې په خپلو کارونوکښې مشغول وو.خوچه کوم چینجی د هغوی لرګي خوړولو نو چه نیم ئې اوخوړولو نو لرګی بوج برداشت نه کړې شو اوهغوی راپریوتل پیریانوته د هغوی د مرګ یقین اوشو اواوتختیدل. د نورو هم ډیرو سلفونه دا روایت دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| آيَةٌ | فِي مَسْكَنِهِمْ | لِسَبَإٍ | لَقَدْ كَانَ |
| نښه | په کورونو دهغوئ کښي | دپاره دسبا قوم | په تحقیق سره وه |

|............ بیشکه دسبا دقوم دپاره ددوئ په آبادئ کښې «دالله ﷺ» نښې وې | چې

جَنَّتٰنِ عَنْ يَّمِيْنٍ وَّشِمَالٍ ۬ كُلُوْا مِنْ رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوْا

دوه باغونه | ښي طرفته | او گس طرفته | خورئ | د رزق | د رب خپل نه | او شکر اوباسئ

ددې ښي او گس طرفته دوه باغونه (خواره) وو (اجازت وو چې) د رب خپل رزق خورئ او د هغه شکر اوباسئ

لَهٗ ؕ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَّرَبٌّ غَفُوْرٌ ﴿۱۵﴾ فَاَعْرَضُوْا فَاَرْسَلْنَا

د هغه | وطن دې | پاک | او رب دې | بښونکې | پس مخ واړوو هغوئ | پس اوليږو مونږه

دا (ستاسو ښار) پاکيزه ښار دې او (ستاسو رب) بښونکې رب دې انو هغوئ زمونږ د حکم نه مخ واړولو نو مونږه په

عَلَيْهِمْ سَيْلَ الْعَرِمِ وَبَدَّلْنٰهُمْ بِجَنَّتَيْهِمْ

په هغوئ باندې | سيلاب د بند | او بدل ورکړو مونږه هغوئ ته | د دووه باغونو د هغوئ سره |

هغوی باندې د زور سيلاب راپريښودو او د دواړو اړخونو د (گورو) باغونو په بدل کښې مو ورته داسې باغونه

جَنَّتَيْنِ ذَوَاتَيْ اُكُلٍ خَمْطٍ وَّاَثْلٍ وَّشَيْءٍ مِّنْ سِدْرٍ

دوه باغونه نور | خاوندان | د ميوې | بې مزې (ترخې) | او د جاوکې ونې | او څه قدرله | د بيرې نه |

ورکړل | چې بې خونده ميوې او غزونه او لږې غونډې د بيرو جارې په کښې

قَلِيْلٍ ﴿۱۶﴾ ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِمَا كَفَرُوْا ؕ

لږ | دا عذاب | بدله ورکړه مونږه هغوئ له | په سبب د هغې | چې کفر ئې اوکړو |

ولاړې وې | دا مو وررته د ناشکرئ بدله ورکړه | او مونږ داسې سزاگانې صرف

وَهَلْ نُجٰزِيْٓ اِلَّا الْكَفُوْرَ ﴿۱۷﴾

او جزا نۀ ورکوؤ مونږه | مگر | ناشکره ته |

ناشکره خلقو ته ورکوو |

**قوله تعالى:- لَقَدْ كَانَ لِسَبَاٍ فِيْ مَسْكَنِهِمْ اٰيَةٌ ۚ**

**د قوم سبا تذکره:-** قوم سبا په يمن کښې اوسيدل اود هغوی په شان تبع ئې هم وه. بلقيس هم د هغوی نه وه. په ډيرونعمتونواومزوکښې وو. په آرام اوسکون سره ئې ژوندتيرولو. د الله ﷻ رسول هغوی له راغلو اودشکرکولوتلقين ئې ورته اوکړو. درب د وحدانيت طرف ته ئې راوبلل اوهم د هغه عبادتونو باندې ئې پوهه کړل نود څه زمانې پورې خو هم داسې پاتې شو خوچه بيا کله هغوی سرکشي اوکړه اومخ واړولو اود الله ﷻ احکام ئې په بې پرواهئ سره پريخودل نوپه هغوی باندې د ډيرزورسيلاب راغلوټول ملک باغونه اوفصلونه وغيره ئې تباه برباد کړل د کوم تفصيل چه دا دې.

**د تباهئ تفصيل او د سبا متعلق احاديث:-** د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه سبا د ښځې نوم دې که دسړي اوکه دځاى؟ حضور ﷺ اوفرمائيل دايوسړې وودهغه لس خامن وو په کوم کښې شپږ په يمن کښې آبادشوې وواوڅلور په شام کښې. مذحج، کنده، ازد، اشعري، انمار اوحمير دا شپږ قبيلې په يمن کښې دي. لخم، جذام، عامله او غسان داڅلور قبيلې شامي دي.[1] فروه بن مسيك ﷺ فرمائي ماد رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو آيا زه پخپل قوم کښې منونکى اوورانديې کيدونکى واخلم اودنه منونکو او

[1] احمد: ۳۱۶/۱

روستو کیدونکوسره جنګ اوکړم؟حضور ﷺ اوفرمائیل او. کله چه زه لاړم نوحضور ﷺ زه راوغوښتم وتې فرمائیل ګوره اول هغوی له داسلام دعوت ورکړه چه اونه منی نوبیادجهادتیاری اوکړه. ما وئیل حضور ﷺ داسباد څه نوم دی؟ دحضور ﷺ جواب تقریبا هم داسې دې لکه چه داپورته تیرشو. په دې کښې داهم دی چه د قبیله انمار کښې بجیله او خثعم هم دی(۱) په یوبل اوږدروایت کښې د دې آیت د شان نزول متعلق هم دې سره دی چه حضرت فرده ﷺ رسول الله ﷺ ته وئیلې وویارسول الله ﷺ د جاهلیت په زمانه کښې دقوم سباعزت وواوس ماته دهغوی دمرتدکیدو ویره ده نوکه تاسو اجازت راکړئې نوزه به ورسره جهاداوکړم. حضور ﷺ اوفرمائیل چه د دوی باره کښې حکم نه دې راکړې شوې. نودا آیت نازل شو الخ. خوپه دې کښې غرابت دې دې نه خودامعلومیږی چه داآیت مدنی دې سره ددې چه داسورت مکی دې.

د سبا نسب نامه:-محمدبن اسحاق دسبا نسب نامه داسې بیانوی. عبدالشمس بن یشجب بن یعرب بن قحطان،دې ته سبا ځکه وائی چه هم دوی د ټولونه وړاندې په عربوکښې د دښمن د قیدکولورواج شروع کړې وو اوهم دوی د ټولونه اول د غنیمت مال په فوج کښې د تقسیم کولورواج اچولې وو. په دې وجه دوی ته رائش هم وائی. مال ته ریش او ریاش هم ورته په عربی کښې وائی. داهم ذکر دی چه دې بادشاه د رسول الله ﷺ دتشریف راوړو نه وړاندې د هغوی پیشین ګوئی کړې وه چه د ملك مالك به زمونږ نه پس یو نبی وی چه د حرم عزت به کوی. د هغه نه پس به د هغه خلیفه ګان وی د چاپه وړاندې چه به د دنیابادشاهان سرښکته وی. بیا به په مونږ کښې هم بادشاه راځی او په بنوقحطان کښې به هم نیکان باشاهان وی.د دغه نبی نوم به احمد ﷺ وی. افسوس چه زه هم د هغه نبی په زمانه کښې وې اود هرقسم خدمت مې غنیمت ګنړلو. اې خلقو کله هم چه د الله ﷻ هغه رسول ﷺ ښکاره شی په تاسو باندې فرض دی چه د هغه ملګرتیااوکړئې اود هغه امدادکونکی جوړشئی څوك هم چه هغه سره ملاو شی په هغه باندې زما دطرف نه دا فرض دی چه هغه دې د هغوی په خدمت کښې زما سلام اورسوی (اکلیل همدانی) دقحطان باره کښې درې اقوال دی.یودا چه هغوی د ارم بن سام بن نوح د اولادنه دی. دویم کښې دی چه هغوی عابر یعنی حضرت هود ﷺ د نسل نه دی دریم دا چه د حضرت اسماعیل ﷺ بن ابراهیم ﷺ دنسل نه دی.دا ټول په تفصیل سره حافظ ابن عبدالبر رحمه الله خپل کتاب الانباه کښې ذکر کړی دی. په بعضې روایتونوکښې چه داکوم راغلی دی چه سبادعربونه وو. د دې مطلب دا دې چه د دې خلقونه د کوم د نسل نه چه عرب شوی دی د هغوی نسل د ابراهیمی نه مشهور نه دې. والله اعلم.

صحیح بخاری کښې دی چه قبیله اسلم کله نښه بازی کوله اوحضور ﷺ د هغې سره تیرشو نوحضور ﷺ اوفرمائیل اې د اسماعیل ﷺ اولاده غشی وروئی ستاسو پلاران هم ډیر غشې وروونکی وو. (۲) دې نه خودا معلومیږی چه د سباسلسله خودخلیل الرحمن پورې رسی.اسلم دانصارویوه قبیله وه اوټول انصار د غسان نه وو اودا ټول یمنیان وو اود سبااولاد وو. داخلق مدینې ته هغه وخت راغلی وو کله چه په سیلاب د هغوی وطن تباه شو یوه ډله راغله دلته آباده شوې وه. دویمه شام ته لاړه. غسانی ورته په دې وجه وائی چه هم د دې نومې د اوبویوځائ باندې دوی ولاړوو. داهم وئیلې شوی دی چه دا د مشلل سره نیزدې دې. دحضرت حسان بن ثابت ﷺ د شعر نه هم د دوی ثبوت ملاویږی. چه یود اوبو والا ځائ یادهغه کوهی نوم غسان وو.داچه کوم حضوراکرم ﷺ فرمائیلی دی چه دهغه لس اولاد وو دې نه مراد صلبی اولاد نه وو.ځکه چه بعضې بعضې په کښې د دوو دریودریو نسلونونه پس هم دی. لکه چه په کتب انساب کښې موجود دی. داکوم چه په شام اویمن کښې آبادشوی دی داهم د سیلاب د راتلونه پس ذکردې بعضې هم هلته اوسیدل اوبعضې اخوادیخوا لاړل.د دیوال قصه داسې ده چه دواړو طرفونه

---

۱) ابوداؤد کتاب الحروف:۳۹۸۸وسنده حسن، ترمذی:۳۲۲۲.
۲) صحیح بخاری کتاب الجهاد باب التحریض علی الرمی...:۲۸۹۹، احمد:۵۰/۴، ابن حبان: ۴۶۹۳.

غروودکوم خایٔ نه چه چینې اونهرونه رابهیدل اود هغوی ښارونوته به راتلل دغه شان به لختی او سیندونه هم اخوادیخوا نه راتلل. د دې په پخوانویادشاهانوکښې چا د دې دوارو غرونوپه مینځ کښې یومضبوط پیشتی جوړه کړې وه. د کوم دیوال په وجه چه اوبه اخوادیخوا شوې وې ښانسته دریاب به ترې روان وو.دکوم دوارو طرفونوته چه باغونه اوفصلونه لګولې شوي وو.د اوبودزیاتوالی اود ښکلې زمکې په وجه چه داعلاقه ډیره شنه اوآباده وه تردې چه دحضرت قتاده رحمه الله بیان دې چه یوې ښځې به په سرباندې شکرئی کیخوده او تله به نو په روانه کښې به هغه شکرئی د میوونه ډکه شوې وه. د ونونه چه به کومه میوه پخپله راپریوتله هغه به دومره زیاته وه چه په لاس سره د راشوکولو ضرورت به نه وو.[1] دا دیوال په مارب کښې وو چه د صنعاء نه په دریومنزلوباندې وو او د سد مارب په نوم سره مشهوروو.

**د ملک سبا ښائست:-** داب و هوا دښکلې والی صحت اومزاج په اعتدال سره دالله ﷻ مهربانئی سره داسې ووهلته به ماشی مچان اوزهریله ځناور هم نه وو.دا د دې د پاره وو چه داخلق الله ﷻ اودهغه توحید اومنی په ځان اودزړه په خلوص سره د هغه عبادت اوکړی. داوه هغه د قدرت نښه دکومې ذکر چه په دې آیت کښې دې.ددوارو غرونوپه مینځ آباد کلې اودکلې دوارو طرفوته تک شنه میوه دار باغونه او تک شنه فصلونه وو. دوی ته الله ﷻ فرمائیلې وو چه د خپل رب ورکړې رزق خورئی اود هغه په شکرکښې اخته اوسئی. خوهغوی دالله تعالی توحیداود هغه دنعمتونوشکر هیرکړو اود نمر عبادت ئی کولو. لکه چه ملاچرګک حضرت سلیمان علیه السلام ته خبرورکړې وو چه ﴿وَجِئْتُكَ مِنْ سَبَإٍ بِنَبَإٍ يَقِينٍ﴾[2]یعنی ما تاله د سبا یوپوخ خبر راوړې دې یوه ښځه د هغوی بادشاهی کوی هغې سره هرڅیز موجود دې او په یو عظیم الشان تخت دبادشاهئی ناسته ده. بادشاه او رعایا ټول د نمر عبادت کوی. شیطان د هغوی لار وهلې ده. بې لارې شوی دی.

**ملک سبا ته دولس پیغمبران راغلی وو:-** روایت دې چه دولس یادیارلس پیغمبران هغوی له راغلې وو. آخردهغوی علم رنګ راوړاوکوم دیوال چه هغوی جوړکړې وو هغه مړو د دننه نه ډډکړو اودباران په موده کښې رامات شو او په اوبوکښې لاهوشو. د دې دریابو اوچینو دباران ټولې اوبه راغلې د هغوی کلی دهغوی محلونه د هغوی باغونه اوفصلونه ټول تباه بربادشو. لاسونه ئی مروړل چه هیڅ چل ول نی هم اونه چلیدو بیا خو هغه تباهی راغله چه په دې زمکه باندې یوه میوه داره اونه نه شوه اودریدې. د شوې کیکرازغی اوهم داسې بې میوې اوبدمزه ونې راټوکیدلې.اوداده چه څه دبیرو ونې هم راټوکیدلې وې چه نسبتا د نورو ونونه څه د کار وې. اوهغه خوډیرې ازغیژنې اودکمې میوې والا وې. دا وو دهغوی دکفراوشرک سرکشئی اوکبریدله چه نعمتونه ترې لاړل اوزحمتونوکښې اخته شول. کافرانوته هم داسې اود دې په شان سختې سزاګانې ورکولې شی .حضرت ابن جریر رحمه الله فرمائی د ګناهونویدله هم دا وی چه په عبادتونوکښې سستی راشی په روزګارکښې تنګی راشی او په خوندونوکښې سختې راشی.یعنی چرته ئی چه د راحت مخ اولیده نو څه زحمت پرې راپریوتلو اومزه ئی خاورې شوه.

| | |
|---|---|
| بینهم | وَجَعَلْنَا |
| او مونږ دهغوی د ملک اود هغو کلو | او آباد کړی وو مونږه \| په منځ دهغوی کښی |

[1] الطبری: ۳۷۲/۲۰.

[2] ۲۷/النمل:۲۲. الخ

وَبَيْنَ الْقُرَى الَّتِيْ بٰرَكْنَا فِيْهَا قُرًى ظَاهِرَةً

او په منځ دکلو کښي اهغه کلو کښي اچي برکت کیښودي وو مونږه اپه هغې کښي ا کلی ښکاره

ترمینځه چې برکتونه مو په کښې اچولې وو نور ډیر کلی اباد کړی وو ا چې ښکاره پراته وو

وَقَدَّرْنَا فِيْهَا السَّيْرَ ؕ سِيْرُوْا فِيْهَا لَيَالِيَ وَاَيَّامًا

او په اندازه کړي وو مونږ ا په هغې کښي ا مزل ا ځی راځئ ا په دې کښي ا دشپې ا او دورځې

اوپه هغې کښې مو دتګ راتګ (سمې پخې) اندازې مقرر کړې وې اچې بې غمه په کښې شپه او ورځ

اٰمِنِيْنَ ۱۸ فَقَالُوْا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا

په امن سره ا نو اووئیل هغوئ ا اے ربه زمونږه ا لرې والې پیدا کړه ا په منځ ا دسفرونو زمونږ کښي

تګ راتګ کوئ ا نو هغوئ اووئیل چې ائې زمونږه ربه ! ا زمونږ دا سفرې لرې اوږدې کړه

وَظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَمَزَّقْنٰهُمْ

اوظلم اوکړو هغوئ اپه ځانونو خپلو باندې ا پس جوړ کړل مونږه هغوئ ا قیصې ا او خوارهٔ کړل مونږه هغوئ

اوپه خپل ځان ئې زیاتې اوکړو ا نو مونږ ترې نه قیصئ جوړې کړې ا اوخواره واره مو کړل

كُلَّ مُمَزَّقٍ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ۱۹

په پوره خوررولو سره ا بیشکه په دې کښي ا نښې دی ا دپاره دهر صبر کونکی ا شکر ایستونکی ا

په دې واقعه کښې هر صبر کونکی اوشکر ګذار انسان دپاره (دعبرت) نخښې دی

قوله تعالی:- وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ

**دسبا په قوم باندې دالله تعالی نور انعامونه:** په هغوی باندې چه کوم نور نعمتونه وو دهغې ذکر کولې شی چه نیزدې نیزدې آبادئی وې یومسافرته هم په سفرتلوکښې دخوراك ځښاك یاځه توښې داوړلو ضرورت نه وو. په هریو منزل باندې پخې مزیدارې تازه ښکلې اوخوږې میوې موجود وې. هره یوه شپه دې په یو کلی کښې تیرولې شوه او په آمن او امان سره ښه په مزه ځه راځه. وائی چه کلی صنعاء سره نیزدې خواو شاکښې وو. د (بَاعد) دویم قراءت (بعد) دې په هغه آرام اومزوکښې پلن شواوځنګه چه بنی اسرائیلو د من اوسلوی په بدله کښې اوګه اوپیاز وغیره غوښتې وو هغوی هم د لرې لرې سفرونوکولو غوښتنه اوکړه چه په ځنګل هم راشی اوغیرآباد بیابانونه هم راشی نود خوراك ځښاك خوند به هم راپیداشی. د موسی ﷺ په قوم باندې دې غوښتنې ذلت اورسوائی واچوله دغه شان هغوی ته هم د رزق د فراخئی نه پس هلاکت نصیب شو. په اولږه او ویره کښې پریوتل. اطمینان او امن ئې غرق شو. هغوی کفر کولو سره خپل کارخراب کړو اوس صرف دهغوی قصې پاتې شوې. اوبه خلقوکښې دهغوی افسانې پاتې شو. ګډوډشو او تردې چه تباه شو نو په عربوکښې هغوی ته د سبایانوپه شان مثال ورکوی.

**دملک سبا د یو کاهن قصه.** عکرمه رحمه الله دهغوی قصه بیانولوسره وائی چه په دوی کښې یوه کاهنه ښځه اوکاهن سړې وو چاله چه به پیریانود اخوادیخوانه خبرې راوړلې. دې کاهن ته چرته پته اولګیده چه ددې کلی دتباهئی زمانه رانیزدې ده اود دې ځائ خلق تباه کیدونکی دی. دې وو هم ډیر مالدار او جائیداد من سړې وو هغه سوچ کولو چه ماله ځه کول پکاردی اود دې حویلو مکانونو باغونو په نسبت کښې ځه انتظام کول پکاردی. اخریوه خبره هغه له ذهن کښې راغله چه دهغه دسخرګنئی خلق ډیر زیات وواوهغه قبیلې هم مالداره وې هغه خپل ځوئ راوبللو اوورته ئې اووئیل واوره صبابه ماسره خلق

راجمع کیږي زه به تاته دیوکار اووایم ته انکاراوکړه زه به تاته بدې ردې وایم ته ماته هم په جواب کښې
کنځل کوه زه به راپاسم اوتاله به څپیره درکړم ته هم د دې په جواب کښې ما په څپیره اووهه. هغه ونیل
بابا جانه مانه به داځنګه اوشي؟ کاهن ورته ونیل ته نه پوهیږې یوه هم داسې اهمه معامله مخې ته ده
اوتاله زما حکم منل پکاردی. هغه اقرار اوکړو. کله چه بله ورځ د هغه ملاویدونکي خلق راجمع شو هغه
خپل دې خوئ ته دڅه کار اووئیل هغه صفاانکاراوکړو. هغه ده ته کنځلې اوکړې نو ده هم هغه مخامخ
کنځلې اوکړې. دې په غصه کښې ورپاسیدو اوهغه ئې اووهلو. خوئ هم واپس شو اوپلارې اووهلو دې په
غصه شو او وئې ونیل چاړه راوړئې زه خو به دې حلال کړم. ټول خلق اوویریدل او ډیر ئې پوهه کړو خو
ده هم داوئیل چه زه به دې حلال کړم. خلقو منډې تړې شروع کړې اود هلك ماماګان ئې خبر کړه راغله
اول خو ئې ښه منت زاری اوکړه خوهغه چرته منله. هغوی ونیل چه ته ده له څه بله سزا ورکړه. د ده په
بدله کښې چه مونږ له څه سزا راکول غواړئې راکړئې هغه ونیل چه زه خو به دې باقاعده راسلوم او
حلالوم به ئې. هغوی ونیل چه ته داسې نه شې کولې. دې نه وړاندې به مونږ تامې کړو. هغه ونیل چه ښه
ده کله خبره تردې ځائ راورسیده نوزه په داسې ښارکښې اوسیدل نه غواړم چرته چه زما اوزما د اولاد
په مینځ کښې نور خلق راشی. زما نه زما کورونه جائیدادونه زمکې هرڅه واخلئ اوزه چرته بل خواته
ځم. هغه هرڅه خرڅ کړل او نقد قیمت ئې وصول کړو. کله چه د دې طرف نه تسلی اوشوه نوخپل قوم ته
ئې خبر ورکړو. واورئې د الله ﷻ عذاب راروان دې اودزوال وخت مو نیزدې راروان دې. اوس چه په تاسو
کښې څوك داوږدسفراونوی کورونوخواهش مند دی نوهغه دې عمان ته لاړشي اوچه څوك د خوراك
څښاك شوق مند وی هغه د بصرې ته لاړشي اوچه څوك مزیدارې کهجورې او باغونوکښې کینی او په
آزادئي سره خوړل غواړی نو هغه دې مدینې ته لاړشی. د قوم د ده په خبروباندې یقین وو کوم ځائ چه
کوم خیز خوښ شو نوهم هغه طرف ته ئې مخ کړو منډئې کړه. بعضې د عمان طرف ته بعضې د بصرې
طرف ته او بعضې د مدینې طرف ته. دغه طرف ته درې قبیلې اوس خزرج او بنوعثمان تلې وې. کله چه
داخلق بطن مر ته اورسیدل نو بنو عثمان ته ئې اووئیل چه زمونږ خوداځائ ډیر خوښ دی. اوس به مونږ
وړاندې نه خو نوهم دلته آباد شو اوهم په دې وجه باندې هغوی ته خزاعه ونیلې شی ځکه چه هغوی د
خپلو ملګرونه روستوپاتې شو. اوس اوخزرج برابر مدینې ته اورسیدل اوهم دلته راغله قیام ئې اوکړو.

**دا کاهن څوك وو؟؟** دا اثرهم ډیر عجیبه دې د کوم کاهن چه په دې کښې ذکر دې د هغه نوم عمروبن
عامردې دادیمن سردار وو اودسبادلویوخلقو نه وو اود هغه کارکاهنی وه. په سیرت ابن اسحاق کښې
دی چه دټولونه وړاندې دې دیمن نه وتلې وو ځکه سدمارب ډډکونکې مږې هغه لیدلې وې اوپوهه
شوې وو چه اوس دیمن خیرنشته دادیوال به راپریوځی اوسیلاب به هرڅه لاندې باندې کړی. نوهغه
خپل دټولونه وړوکی خوئ ته دغه مکر کوم چه پورته ذکر شو اوخودلو. په دغه وخت کښې هغه په غصه
سره اووئیل چه زه په داسې ښار کښې نه اوسیږم. زه خپل جائیداد اوزمکې هم په دې وخت خرڅوم.
خلقوونیل دعمرو داغصه غنیمت اوګڼړئې ګران اوارزان هر څه ئې خرڅ کړل خان ئې اوزګارکړو لاړو
قبیله اسد هم ده سره شوه. په لارکښې عکه هغوی سره اوجنګیدل. برابر برابر جنګ اوشو د کوم ذکر چه
عباس بن مرداس سلمی په خپلو شعرونوکښې کړې دې. بیا دوی د دې ځائ نه لاړل او مختلفو ښارونو
کښې خواره شول. آل جفنه بن عمرو بن عامر شام ته لاړل اوس اوخزرج مدینې ته لاړل. خزاعه مر ته او
ازدسراة مراة ته، ازدعمان کښې دلته سیلاب راغلو دمارب بندئې مات کړوسدی ﷺ پدې قصه کښې
بیان کړې دې چه هغه د خپلې مقابلې د پاره خوئ نه وراره ته ونیلې وو. د بعضې اهل علم بیان دې
چه دهغه ښځه د کومې نوم چه طریفه وو په خپل کهانت سره دا خبره معلومه کړه او ټولوته ئې اوخودله

بل روایت کښې دي چه په عمان کښې غساني او ازدهم هلاك کړې شو. سره د خوږو اویخو اوبو او میووفصلونو اود بې حسابه رزق دعرم په سیلاب باندې داحال شو چه یوې یوې نوړنې او یویو څاځکی ته محتاج شو. دا نیول اودا عذاب سختی اوسزا چه کومه هغوی ته اورسیده دې نه هریوصبرکونکې اوشکر کونکې عبرت حاصلولې شي چه د الله ﷻ نافرمانئي څنګه انسان راګیروی عافیت اخواکوی او آفت راولی.په مصیبتونو باندې صبراونعمتونوباندې شکرکونکی به پدې کښې دقدرت دلائل اووینی.
رسول الله ﷺ فرماني الله تعای دمؤمن باره کښې حیرانونکې فیصله کړې ده که راحت ملاو شواودې شکراوکړی نواجربه مومی اوکه ده ته مصیبت اورسی اوصبراوکړی نوبیابه هم اجر مومی.غرض دا چه مؤمن ته په هرحال کښې اجر اوثواب ملاویدنکې دې.دهغه هریوکار نیك دې تردې چه په مینه کومه نوړنې دې دخپلې ښځې په خُله کښې واچوی په دې باندې هم ده ته ثواب ملاویږی.(١)
بخاری اومسلم شریف کښې دی رسول الله ﷺ فرماني حیرانتیاده د هغه مؤمن د پاره چه د الله ﷻ هره فیصله دهغه دښیګړې دپاره وی که ده ته راحت اوخوشحالي ملاویږی نوبه شکرکولوسره نیکی حاصلوی اوکه بدی اوغم وررسی نو صبرکوی اوبدله حاصلوی.دانعمت صرف هم مؤمن ته حاصل دې د چاهرحالت چه بهتری او ښیګړې والا دې. (٢) حضرت مطرف رحمه الله فرماني صبراوشکر کونکې بنیادم څومره ښه دې چه کله ورته نعمت ملاوشي نوشکر کوی او کله چه ورته زحمت ملاوشي نو صبر کوی.

| |
|---|
| وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ |
| او په تحقیق سره \| رښتیا اوموندو \| په معامله دهغوئ کښې \| ابلیس \| ګمان خپل \| |
| او شیطان دهغوئ په حق کښې خپل (دګمراهئ) ګمان صحیح بیا موندو |
| فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝ وَمَا كَانَ لَهُ |
| پس پیروی اوکړه هغویٔ دهغه \| مګر نهٔ \| یوې ډلې \| دمومنانو نه \| اونهٔ وو \| شیطان لره \| |
| نو دایماندارو دیو ټولې نه بغیر نور ټول خلق دهغه په لار روان شول\| اود شیطان په هغویٔ |
| عَلَيْهِم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ |
| په هغویٔ باندې\|څهٔ اقتدار(تسلط) \| مګر \|دپاره ددې چې معلوم کړومونږ\|هغه څوك چې ایمان راوړی |
| باندې نور هیڅ وس نه رسیدو \| مګر ددې (امتحان) دپاره چې مونږ هغه خلق کوم چې |
| بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ ۗ وَرَبُّكَ |
| په آخرت باندې\| دهغه چانه \| چې هغه \| دآخرت نه \| په شك کښې وی \| او رب ستا |
| په آخرت یقین لری دهغه خلقو نه جدا ښکاره کړو \| څوك چې په دې کښې شك کوی \|او ستارب |
| عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ۝ |
| په هر څیز باندې \| ساتونکې نګران دې \| |
| دهر څیز نګران دې \| |

---

(١) احمد:۱/۱۷۳ وحدیث الشافعی (ح۱۲۹ وسنده صحیح) بغنی عنه، عمل الیوم واللیلة:۱۰۷۵. (مسنداحمد)
(٢) صحیح مسلم کتاب الزهد باب المؤمن امرة کله خیر:۲۹۹۹،ابن حبان:۲۸۹۶، احمد:۴/۳۳۳عن صهیب رضی الله عنه.

**قوله تعالى:- وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ**

**دَ شيطان دهوكه:** دسباد قصې دبيان نه پس د شيطان د نورومريدانو په عام توګه بيان کولې شي چه هغوى دهدايت په ځاى ضلالت اودښيګړې په ځاى بدى اخلى. ابليس چه دالله تعالى د دربار نه شړلې اورټلې شونوهغه ونيلې ووچه زه به د آدم ﷺ اولاد دهرقسم نه تباه کولوکوشش کوم اوديوې لږې شان دلې نه بغيربه باقى ټول ستادنيغې لارې نه اړوم.هغه دااوکړه او ونى خودل اوبنيادم نى په خپله پنجه کښې اونيولو. کله چه حضرت آدم ﷺ د خپلې خطاپه وجه د جنت نه راکوز کړې شو اوابليس لعين هم هغه سره راکوز کړې شو هغه وخت هغه ډيرخوشحاله وو او په زړه کښې فخر کولوچه دا مې دهوکه کړو اود ده اولاددهوکه کول خو زما د ګس لاس کار دې. د دې خبيث وينا وه چه زه به بنيادم ته شنه باغونه بنايم په غفلت کښې به نى ساتم اوقسم قسم دهوکې به ورکوم او په خپل جالونوکښې به نى راګير ساتم.دکوم په جواب کښې چه الله رب العزت فرمانيلې وو زمادې هم په خپل عزت قسم وى چه د مرګ د زنکدن نه وړاندې هغه کله هم توبه اوکړى زه به نى قبلوم. هغه چه کله هم ماته آواز کوى زه به د هغه طرف ته متوجه کيږم.ماته چه کله هم هغه توبه اوکړى زه به نى زرقبلوم. مانه چه کله هم هغه څه غواړى زه به نى ورکوم. اومانه چه کله هم هغه ښښنه غواړى زه به نى ښنم. (١)

**قوله تعالى:- وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ**

دهغه هيڅ غلبه حجت زبردستى وهل ټکولو په انسان باندې نه ووصرف دهوکه مکر اوفريب وو په کوم کښې چه دا ټول اونختل. په دې کښې دالله تعالى حکمت دا وو چه د مؤمن اوکافر فرق معلوم شى او د الله ﷻ حجت ختم شى. آخرت منونکى به دشيطان نه منى.ددې منکر به درحمان تابعدارى نه کوى. الله ﷻ په هرڅيز باندې ساتندونکې دې.دمؤمنانوډله دهغه دحفاظت امداد اخلى.پدې وجه ابليس د هغوى هيڅ هم نه شى کولې.اودکافرانو ډله خوپخپله الله ﷻ پريږدى په دې وجه دهغوى نه دالله ﷻ ساتل اخوا کيږى اود شيطان دهريوفريب ښکارجوړيږى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | قُلِ ادْعُوا | | الَّذِيْنَ |
| | | | اووايه (اے نبى ﷺ) چى رااوبلئ | | هغه کسان |
| | | | اووايه چې تاسو دالله ﷻ نه بغير | | |
| زَعَمْتُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | لَا يَمْلِكُوْنَ | مِثْقَالَ | ذَرَّةٍ | |
| چې تاسو ګنړلې دى معبودان | غير دالله نه | چى مالکان نه دى هغوئ | په مقدار | ديوې ذرې | |
| په بل چا د الله ﷻ ګمانونه کوئ | | هغوئ ټول راوبلئ | هغوئ خو په اسمانونو او زمکه کښې د ذرې | | | |
| فِى السَّمٰوٰتِ | وَلَا فِى الْاَرْضِ | وَمَا لَهُمْ | فِيْهِمَا | مِنْ شِرْكٍ | |
| په اسمانونو کښى | اونه په زمکه کښى | او نشته هغوئ لره | په دې دواړو کښى | څه شرکت | |
| برابر اختيار هم نه لرى | اونه دهغوئ په دې کښې څه حصه شته | اونه په هغوئ کښې | | | |
| وَمَا لَهٗ | مِنْهُمْ | مِّنْ ظَهِيْرٍ | وَلَا تَنْفَعُ | الشَّفَاعَةُ | |
| او نشته دپاره دالله | دهغوئ نه | څوک مددګار | اونه ورکوى فائيده | سفارش | |
| څوک دالله ﷻ په مقابله کښې امداد کولې شى | اودالله په دربار کښې سفارشونه هيڅ فائده نه ورکوى | | | | |

١) الدرالمنثور:٦٩٥/٦.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عِنۡدَهٗۤ | اِلَّا | لِمَنۡ | اَذِنَ | لَهٗ ؕ | حَتّٰۤى |
| په دربار دهغه کښې | مګر | دپاره دهغه چا | اچې اجازت ورکړې وي الله | دپاره دهغه | اتر هغې پورې |
| خود چا په حقله چې هغه اجازت ورکړی | | ..............تردې چې څه وخت | | | |
| اِذَا | فُزِّعَ | عَنۡ قُلُوۡبِهِمۡ | قَالُوۡا | مَاذَا ۙ | قَالَ |
| چې کله | لرې کړې شي يره | دزړونو دهغوئ نه | نو هغوئ به اووائي | چې څه | اووئیل |
| دهغوئ دزړونو نه هيبت کم شي | | نو ديو بل نه تپوسونه کوي | چې ستاسو رب څه حکم | | |
| رَبُّكُمۡ ؕ | قَالُوا الۡحَقَّ ۚ | | وَهُوَ | الۡعَلِيُّ | |
| رب ستاسو | نو اوبه وائي (سفارش کونکي) | چې حق ئي اووئیل | او هغه | ډير اوچت | |
| رالیږلي دي | ............هغوئ وائي چې حقې خبرې دي | او دې ډير اوچت دټولو نه لوئي دي | | | |
| الۡكَبِيۡرُ ۝ | | | | | |
| او ډير لوئ دي | | | | | |

**قوله تعالى:- قُلِ ادۡعُوا الَّذِيۡنَ زَعَمۡتُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ ۚ**

**ټول اختيارات هم الله ﷻ سره دي:-** بيان کولې شي چه الله ﷻ يوازې دې واحددې احد دې فرددې صمد دې.دهغه نه بغيرڅوک دعبادت لائق نشته. هغه بې مثاله بې شريك اوبې مثل دې.دهغه څوک شريك نشته څوک ملګرې نشته مشير نشته وزير نشته امدادى نشته پښتنې والا نشته. نو بيا ضدکونکې او خلاف ويونکيه ته چرته؟ کوم کوم ته چه چغې وهې اووهه اوګوره معلومه کړه چه د يوې ذرې هم اختيار نه لري. صرف بې وسه بالکل محتاج اوعاجز دي. نه په زمکوکښې د هغوی څه چليږی نه په آسمانونو کښې لکه چه بل آيت کښې دی ﴿وَالَّذِيۡنَ تَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖ مَا يَمۡلِكُوۡنَ مِنۡ قِطۡمِيۡرٍ ؕ﴾([1])هغوی دکهجورې ديو پوستکي هم مالکان نه دي اوصرف داهم نه چه د دوی خپل اختياري حکومت نشته بلکه دشرکت په توګه ئي هم نشته. نه الله ﷻ د دوی نه په څه کارکښې امداد اخلي بلکه داټول فقيران اومحتاجان دي. د هغه ددرغلامان اود هغه بنديګان دي.

**د الله ﷻ د اجازت نه بغير هيڅوک هم سفارش نشي کولې:-** دهغه عظمت لوئي عزت داسې چه بغيرد هغه داجازت نه د چا هم جراءت نشته دهغه په وړاندې دچادسفارش د پاره شونډې اوخوزوی.لکه چه ارشاد دې﴿مَنۡ ذَا الَّذِيۡ يَشۡفَعُ عِنۡدَهٗۤ اِلَّا بِاِذۡنِهٖ ؕ﴾ ([2])څوک دې؟ چه د هغه په وړاندې د چا شفاعت د هغه د اجازت او رضامندئ نه بغيراوکړې شي. يوبل آيت کښې دی ﴿ وَكَمۡ مِّنۡ مَّلَكٍ فِى السَّمٰوٰتِ لَا تُغۡنِىۡ شَفَاعَتُهُمۡ شَيۡـًٔا اِلَّا مِنۡۢ بَعۡدِ اَنۡ يَّاۡذَنَ اللّٰهُ لِمَنۡ يَّشَآءُ وَيَرۡضٰى ۝﴾([3])يعنى دآسمانونوټولې فرښتې هم دهغه په وړاندې دچادسفارش دپاره شونډې نه شي خوزولې خوچه د چاد پاره الله ﷻ د خپلې رضامندئ اجازت ورکړی. بل ځای ارشاد دې ﴿يَعۡلَمُ مَا بَيۡنَ اَيۡدِيۡهِمۡ وَمَا خَلۡفَهُمۡ وَلَا يَشۡفَعُوۡنَ ۙ اِلَّا لِمَنِ ارۡتَضٰى وَهُمۡ مِّنۡ خَشۡيَتِهٖ مُشۡفِقُوۡنَ ۝﴾([4])هغه خلق صرف دهغوی سفارش کولې شي دچادپاره چه داالله ﷻ رضامندي وی. هغوی خو پخپله داالله ﷻ د ويرې نه رچيږی. د ټول اولاد

---

[1] ) ۳۵/فاطر:۱۳.
[2] ) ۲/البقرة:۲۵۵.
[3] ) ۵۳/النجم:۲٦.
[4] ) ۲۱/الانبياء:۲۸.

ادم سردار لویٔ شفیع او سفارشي حضرت محمدرسول الله ﷺ هم چه کله د قیامت په ورځ باندې مقام محمود ته تشریف یوسي چه الله ﷻ راشي اودمخلوق فیصلې اوکړي دهغه وخت په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی زه به د الله ﷻ په وړاندې په سجده کښې پریوځم هم الله ﷻ ته پته ده چه ترکومې به په سجده کښې پروت یم. په دې سجده کښې به د خپل رب دومره تعریفونه بیانوم چه دې وخت کښې هغه الفاظ هم ماته یاد نه دی. بیابه ماته اوونیلې شي اې محمد ﷺ خپل سر اوچت کړه اوخبره کوه ستا خبره به اوریدې شي ته غواړه تاته به درکولې شي. ته شفاعت کوه قبلولې به شي.[1]

درب د عظمت یوبل مقام بیانولې شي چه کله هغه دخپلې وحی کلام کوی اود آسمان مقرب فرښتې دا اوری نود ویرې نه رچیږی اود بې هوښنې والا په شان کیږی. اوچه کله د هغوی د زړونونه ویره اخوا شي. د ﴿فزغ﴾ دویم قراءت ﴿فرغ﴾ هم راځي. د دواړو مطلب هم یو دې. نو بیادوی په خپل مینځ کښې معلومات کوی دې وخت کښې درب کوم یوحکم نازل شو؟ نود عرش والا خپل ځان سره اوهغوی د خپل ځان سره دغه شان درجه په درجه د رب تعالی حکم رسوی. بې د څه کمی زیاتی نه هم دغه شان تیک تیک رسوی.ددې آیت یومطلب داهم بیان شوې دې چه کله دزنکدن وخت راځي هغه وخت مشرکان دا وائی اودغه شان د قیامت په ورځ چه کله د غفلت نه رابیدار شي اوپه هوش کښې راشي نو هغه وخت به داوائی چه ستاسو رب څه اوونیل؟ جواب به ملاؤ شي حق. فرمائی حق ئی اوفرمائیل د کوم څیز نه چه په دنیاکښې بې پرواه وئی نن به د هغه په وړاندې پیش کولې شي. نود زړونونه د ویرې لرې کیدو مطلب دا شو چه کله د سترګونه پرده اوچته کړې شي هغه وخت به ئی ټول شکونه او تکذیبونه جدا شي. نو نه د مرګ د وخت اقرار کول به نفع ورکړی اونه به د قیامت د ورځې د میدان اقرار کول نفع وراورسوی. خود امام ابن جریر رحمه الله په نیز اولنې تفسیر غوره دې یعنی دې نه مراد فرښتې دی. او هم دا تیک هم دې اوهم د دې تائید د احادیثو اوآثارونه هم کیږی.

په صحیح بخاری‌کښې د دې آیت په تفسیرکښې په دې موقعه باندې دی کله الله ﷻ د یوامر فیصله په آسمان کښې کوی نو په عاجزئی سره خپلې وزرې ښکته کوی اود رب کلام داسې واقع کیږی لکه د هغه زنځیر کوم چه په کاڼړی وهلوسره غږیږی.کله چه ویره کمه شي نوتپوس کوی ستاسو رب دې وخت کښې څه اوفرمائیل؟ جواب ملاویږی چه څه ئی اوفرمائیل حق دی اوهغه لوئی اوکبیردې. بعضې ځل داسې هم کیږی چه کوم پیریان د فرښتو خبرې اوریدو له پورته تلی دی اوچه د یوبل دپاسه قط په قط ولاړ دی اوهغوی څه کلمه اوری د بره والا د ځان نه ښکته ته اودغه شان وار په وار لاندې یوبل ته اوروی اوهغوی ئی دکاهنانوغوږونوته رسوی. هغوی پسې ډیر زرد اُور شغله دهغوی دسوزولو د پاره راتوپ کوی خوکله کله هغه راشي اود دې نه وړاندې وړاندې یو بل ته رسوی او کله د رسولونه وړاندې وړاندې سوزولې شي.کاهن دې یوې کلمې سره سل دروغ یوځائ کړی اوخلقو کښې خوروی. هغه یو خبره رښتاشي اوهغوی ددوی مریدان جوړیږی چه ګوره داخبره ددوی دوینا برابره اوشوه.[2] مسند احمد کښې دی حضوراکرم ﷺ یوځل صحابه کرامو رضی الله عنهم سره ناست وو تشریف ئی ایخودې وو.یوستورې راجداشواویوه زبردسته رڼا اوشوه.حضور ﷺ اوفرمائیل دجاهلیت په زما نه کښې ددې ستوری راپریوتو نه څه مطلب وو؟ هغوی وئیل چه مونږ به په دې موقع داګنړل چه یا خو یو ډیر لوئ سړې پیداشو یا مړ شو.دحضرت زهری رحمه الله نه تپوس اوشو آیا د جاهلیت په زمانه کښې به هم ستوری راجوداکیدل. وئیل اوخو ډیرکم اودحضور ﷺ د راتلونه پس خو ډیر زیات شوی دی.حضور ﷺ اوفرمائیل ګورئی د دې د چاد

---

[1] صحیح بخاری‌کتاب التوحید باب قول الله تعالی ﴿لما خلقت بیدی﴾: ۷۴۱۰، صحیح مسلم:۱۹۳.

[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الحجرباب قوله﴿الامن استرق السمع فاتبعه شهاب مبین﴾:۴۷۰۱، ابوداوٗد: ۳۹۸۹، ترمذی:۳۲۲۳، ابن ماجه: ۱۹۴، ابن حبان:۳۶.

مرګ يا ژوند سره هيڅ تعلق نشته. خبره دا ده چه کله زمونږ رب د يوې خبرې فيصله په اسمانونو کښې کوی اود عرش حاملانې فرښتې دهغه تسبيح بيانوی بيا د اووم آسمان والا بيا د شپږم آسمان والا اودغه شان دا تسبيح د دنياد آسمان پورې رارسی. بيا د عرش سره خواوشاکښې فرښتې دعرش د اوچتونکو فرښتونه تپوس کوی الله ﷻ څه اوفرمانيل؟هغوی دوی ته ښائی اودغه شان هره يوه دښکته والادپورته نه تپوس کوی هغه ئی ورته ښائی تردې چه داول آسمان والاته خبر راورسی.کله اوچتيدونکی پيريان هغه اوری نوپه دوی باندې داستوری راويشتلې شی. کومه خبره چه الله ﷻ ته وررسول منظور وی هغه دوی راواخلی اوهغې سره ډيرباطل اودروغ يوځای کړی اوپه خلقو کښې مشهوره کړی. (١)

ابن ابی حاتم کښې دی الله ﷻ چه کله دخپلې وحی أمرکوی اوآسمانونه د ويرې نه رچيږی اوفرښتې د ويرې نه په سجده راپريوځی. د ټولونه اول حضرت جبرائيل ؑ سر اوچتوی اود الله ﷻ فرمان اوری. بيا ئی د هغوی په ژبه نورې فرښتې اوری. اوهغوی وائی چه الله ﷻ حق اوفرمائيل هغه وچت او د لوئې والا دی.تردې چه هغه د الله ﷻ امانتداره فرښته د چاطرف ته چه داوی هغه ته ئی رسوی.دحضرت ابن عباس ؓ اوقتاده ؒ نه روايت دې چه دا د هغه وحی ذکر دې کوم چه د حضرت عيسی ؑ نه پس د نبی نه کيدو په زمانه کښې بنده شوې وه او بيا د شروع نه په ختم المرسلين ﷺ باندې نازله شوه. حقيقت دا دې چه ددې شروع وحی هم په دې آيت کښې داخليدلوکښې هيڅ شک نشته. خوآيت شامل دې دې ته اودې ټولوته.

| | | | |
|---|---|---|---|
| قُلْ | مَنْ يَّرْزُقُكُمْ | مِّنَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ط |
| ورته اووايه | چې څوک رزق درکوی تاسو ته | داسمانونو نه | او دزمکې نه |

(اې پيغمبره) ته تپوس اوکړه چې تاسو ته د اسمان او زمکې نه څوک روزی درکوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قُلِ | اللّٰهُ لا | وَاِنَّآ | اَوْ اِيَّاكُمْ | لَعَلٰى هُدًى | اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ |
| ورته اووايه | چې الله | او مونږه | يا تاسو | ضرور په هدايت باندې يو | يا په ګمراهئ |

ورته اووايه چې الله (روزی درکوی) او بيشکه مونږ يا تاسو يا خو په سمه لاره روان يو يا بۀ ښکاره

| | | | |
|---|---|---|---|
| مُّبِيْنٍ ۞ | قُلْ | لَّا تُسْئَلُوْنَ | عَمَّآ |
| ښکاره کښې يو | ورته اووايه | تپوس به نشی کيدې ستاسو نه | په باره دهغې |

ګمراهئ کښې پراته يو | ته ورته اووايه چې تاسو نه به زمونږ دجرمونو په باره کښې تپوس نه کيږی

| | | |
|---|---|---|
| اَجْرَمْنَا | وَلَا نُسْئَلُ | عَمَّا |
| جرمونو کښې چې کړی وی مونږه | او تپوس به نشی کيدې زمونږ نه | په باره دهغه کارونو کښې |

..............اونه به مونږ نه ستاسو دعملونو (په باره کښې) تپوس کيږی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تَعْمَلُوْنَ ۞ | قُلْ | يَجْمَعُ | بَيْنَنَا | رَبُّنَا | ثُمَّ يَفْتَحُ |
| چې تاسو ئې کوې | اووايه | جمع به اوکړی | په منځ زمونږ کښې | رب زمونږه | بيا به فيصله اوکړی |

ته ورته اووايه چې زمونږ رب به ټول راجمع کړی | نو بيا به زمونږ په مينځ کښې سمه روغه

١) صحيح مسلم كتاب السلام باب تحريم الكهانة واتيان الكهان: ۲۲۲۹، ترمذی: ۳۲۲۴، ابن حبان: ۶۱۲۹، احمد: ۲۱۸/۱.

بَيْنَنَا بِالْحَقِّ ط وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيمُ۝ قُلْ

په منځ زمونږ کښې | په حقه سره | او هغه | ښهٔ فيصله کونکې دې | ښهٔ عالم دې | اووايه

فيصله اوکړی | اوهغه په فيصله کولو کښې ډير ښه پۀ هرڅه پوهه دې | ته ورته اووايه

اَرُوْنِيَ الَّذِيْنَ اَلْحَقْتُمْ بِهٖ شُرَكَآءَ كَلَّا ط بَلْ

رااوښايئ ماته | هغه معبودان | چې پيوست کړی دی تاسو | دهغه سره | شريکان | هرګز نهٔ | بلکه

چې ماته خو لږ هغه شريکان اوښائې | چې تاسو دالله ﷻ سره يوځائې کړی دی | ، هيڅرې نه ،

هُوَاللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ۝

هم دغه الله دې | چې غالب دې | حکيم دې |

بلکه الله ﷻ صرف يو دې | چې ډير زبردست اوډحکمت خاوند دې

**قوله تعالی:- قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط**

**دَ الله ﷻ دَ بعضې صفتونوذکر:-** الله ﷻ داخبره ثابتوی چه هم هغه خالق اورازق دې اوصرف هم هغه د الوهيت والادې.لکه څنګه چهٔ ددې خلقودا اقرار دې چه د آسمان نه بارانونه راورونکې اودزمکو نه غله راټوکونکې صرف هم الله ﷻ دې. هم داسې دوی له دا هم منل پکاردی چه د عبادت لائق هم صرف هغه دې.

**قوله تعالی:- وَاِنَّآ اَوْاِيَّاكُمْ**

**د مسلمانانو اوکافرانو مينځ کښې لوئې فرق دې:-** بيافرمائی چه په مونږ اوتاسو کښې دومره لوئ اختلاف دې نولامحاله يويه هدايت اوبل په ضلالت دې. دانه شی کيدې چه دواړه فريقه په هدايت باندې وی يا دواړه په ضلالت باندې وی.مونږ موحديو اود توحيد دلائل ښکاره ښکاره او ډير واضحه مونږ بيان کړی دی اوتاسو په شرک باندې ئی چه دهغې ستاسو په لاس کښې هيڅ دليل نشته. نويقيناً مونږ په هدايت باندې يقيناً تاسو په ضلالت باندې ئی.د رسول الله ﷺ صحابه کرامو ﷺ کافرانو مشرکانوته هم دا ونيلې وو چه په مونږ کښې يوضرور رښتونې دې ځکه چه د دومره مخالفت او تباين نه پس د دواړو رښتونی کيدل خوعقلاً هم محال دی(۱)د دې آيت يوه معنی داهم بيان کړې شوې ده چه صرف مونږ په هدايت اوتاسو په ضلالت باندې ئی. زمونږ اوستاسو هيڅ تعلق نشته. مونږ تاسو نه او ستاسو اعمالو نه بالکل خلاص يو اوچه په کومه لار مونږ روان يو اوتاسوهم په هغه لار راشئی نو بې شکه تاسو زمونږ نی اومونږ ستاسو يو ګنی زمونږ اوستاسو په مينځ کښې هيڅ تعلق نشته. يوبل آيت کښې دی که چرې دوی تا دروغ ګنړی نوورته اووايه زما عمل ماسره اوستاسو عمل تاسو سره دې. تاسو زما په عمل چرې کونی او زه ستاسو د کړو نه ويزاره يم.

سورت﴿ قُلْ يٰۤاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ۝ ﴾(۲)کښې هم ددې بې تعلقئی اوخلاصی ذکردې.رب العالمين به ټول مخلوق دقيامت په ميدان کښې راجمع کولوسره رښتونې فيصلې کوی.نيکانوته به دهغوی بدله او بدانوته د هغوی سزاورکولې شی.په هغه ورځ به تاسوته زمونږ حقانيت اوصداقت معلوم شی.لکه چه ارشاد دې ﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّتَفَرَّقُوْنَ۝ ﴾(۳)دقيامت په ورځ به ټول جداجداشی.ايمانداربه دجنت باغيچوکښې

---

(۱) الطبری:۲۰/۴۰۱.

(۲) ۱۰۹/الکافرون:۱. الخ

(۳) ۳۰/الروم:۱۴.الخ.

خوشحاله اوفریمانه وي. اوزمونږ اياتونه اود اخرت ورځ دروغ ګڼرونكي به د دوزخ په كندوكښې حيران اوپريشان وي. هغه حاكم اوعادل دې. د حقيقت حال نه خبردار دې تاسو داخپل معبودان لږ شان ماته هم اوښائې خود كوم ځائ نه به ثبوت وركړې شئ. سره د دې چه زما رب بې مثاله بې شريك اوعديم المثل دې.هغه يوازې دې هغه دعزت مالك دې.چاچه ټول پخپله قبضه كښې كړي دی اوبه هريوباندې غالب راغلې دې.حكيم دې په خپلو اقوالو اوافعالوكښې.دغه شان شريعت اوبه تقديركښې هم د بركت والا منزه اود مشركانود ټولو تهمتونونه جدادې.

| | |
|---|---|
| | وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ |
| | اونهٔ ئې ليږلي مونږ تهٔ \| مګر ټولو خلقو ته |
| | او ائې نبي ﷺ مونږ ته ټولو خلقو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بَشِيۡرًا | وَّنَذِيۡرًا | وَّلٰكِنَّ | اَكۡثَرَ النَّاسِ | لَا يَعۡلَمُوۡنَ۝ |
| زيرې وركونكي | او يرونكي | وليكن | زيات دخلقو نه | نهٔ پوهيږی |

دپاره (د جنت) زيرې وركونكي او (دعذاب) نه ويرونكي جوړ كړې ليږلي | خو زيات خلق په دې نه پوهيږی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيَقُوۡلُوۡنَ | مَتٰى | هٰذَا الۡوَعۡدُ | اِنۡ كُنۡتُمۡ | صٰدِقِيۡنَ۝ | قُلۡ |
| او وائي دوئ | كله به وي | دا وعده (قيامت) | كه يئ تاسو | رښتيني | ورته اووايه |

اودوئ وائي چې دا (دقيامت وعده) به كله پوره كيږی | كه چرې تاسو رښتونی يئ | ته ورته

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَّكُمۡ | مِّيۡعَادُ يَوۡمٍ | لَّا تَسۡتَاۡخِرُوۡنَ | عَنۡهُ |
| مقرره ده ستاسو دپاره | نيټه ديوې ورځې | چې تاسو روستو والې نشئ كولې | دراتلو دهغې نه |

اووايه چې تاسو سره ديوې داسې ورځې وعده ده | چې نه به ترې يو ساعت روستو

| | |
|---|---|
| سَاعَةً | وَّلَا تَسۡتَقۡدِمُوۡنَ۝ |
| يو ساعت | اونهٔ ئې مخكښې راوستلې شئ (يو ساعت) |

كيديشي اونه به ترې مخكښې كيديشی |

**قوله تعالى:- وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيۡرًا وَّنَذِيۡرًا**

**پيغمبرﷺ نذير اوبشيردې :-** الله ﷻ خپل بنده اورسول ﷺ ته فرمائي مونږ ته خپل ټول كائنات ته رسول جوړكړې ليږلې ئې. لكه چه بل ځائ كښې ارشاد دې ﴿ قُلۡ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّىۡ رَسُوۡلُ اللّٰهِ اِلَيۡكُمۡ جَمِيۡعَا ۨالَّذِىۡ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحۡىٖ وَيُمِيۡتُ ۖ فَاٰمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَرَسُوۡلِهِ النَّبِىِّ الۡاُمِّىِّ الَّذِىۡ يُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوۡهُ لَعَلَّكُمۡ تَهۡتَدُوۡنَ۝ ﴾[1] يعني اعلان اوكړه اې خلقو زه ستاسو ټولو طرف ته د الله ﷻ رسول يم. يوبل آيت كښې دی ﴿ تَبٰرَكَ الَّذِىۡ نَزَّلَ الۡفُرۡقَانَ عَلٰى عَبۡدِهٖ لِيَكُوۡنَ لِلۡعٰلَمِيۡنَ نَذِيۡرًا۝ ﴾[2] دبركت مالك دې هغه الله چاچه په خپل بنده باندې قرآن نازل كړو دې دپاره چه هغه ټول جهان هوښيار كړی.دلته ئې هم اوفرمائيل چه اطاعت كونكوته د جنت زيرې وركړه اونامنونكوته د دوزخ. خواكثر خلق دخپل جهالت په وجه درسول الله ﷺ نبوت نه مني.لكه چه ارشاددې ﴿ وَمَاۤ اَكۡثَرُ النَّاسِ وَلَوۡ حَرَصۡتَ بِمُؤۡمِنِيۡنَ۝ ﴾[3] كه ته هر خومره غواړې خواكثر خلق به بې ايمانه وي.بل

---

[1] ) ۷/الاعراف:۱۵۸.
[2] ) ۲۵/الفرقان:۱.
[3] ) ۱۲/يوسف:۱۰۳

خایٔ ارشاد دې که د لویٔ دلې اومنې نوهغوی پخپله هم تاد نیغې لارې نه اخواکړی.د رسول الله ﷺ رسالت دعاموخلقو طرف ته وو.د عربواوعجموټولوطرف ته.الله ﷻ ته د ټولو نه زیات ګران هغه دې چه د ټولونه زیات د هغه د فرمان تابعداروی. (١)

**درسول کریم ﷺ بهتری په ټولو انسانانو ده:** ابن عباس رضی الله عنه فرمائی الله ﷻ حضرت محمد ﷺ ته په آسمانونوواالاباندې اوپه نبیانوباندې اوپه ټولوباندې غوره والې ورکړې دې.خلقو ددې دلیل معلوم کړو نوحضور ﷺ اوفرمائیل ګورئی قرآن فرمائی چه هریورسول نې خپل قوم ته د هغوی په ژبه کښې اولیګلو دې دپاره چه هغه په دوی کښې ښه په کولاو باندې تبلیغ اوکړی اودحضوراکرم ﷺ متعلق فرمائی چه مونږ ته دعامو خلقو طرف ته رسول جوړکړې لیګلې.په بخاری اومسلم شریف کښې درسول مقبول ﷺ ارشادمبارک دې ماته پنځه صفتونه داسې راکړې شوی دی چه مانه وړاندې یو نبی ته هم نه دی ورکړې شوی.دیوره میاشت په فاصله باندې زما امدادصرف په رعب سره کړې شوې دې. زما د پاره ټوله زمکه جمات اوپاکه ګرځولې شوې ده.زما په امت کښې چه په چاباندې په کوم ځایٔ کښې دمانځه وخت راشی هغه دې هم هغه ځایٔ کښې مونځ اوکړی. زمانه وړاندې د یونبی دپاره دغنیمت مال حلال نه وو ګرځولې شوې. زما دپاره غنیمتونه حال کړې شو.ماته شفاعت راکړې شو.هرنبی صرف دخپل قوم طرف ته لیګلې شواوزه دټولوعامو خلقوطرف ته لیګلې شوې یم.یعنی پیریانو انسانانو عربو او عجمو طرف ته. (٢)

**قوله تعالی:- وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ**

**د منکرینو د قیامت سوال اودهغې جواب:-** بیاد کافرانودقیامت محال کیدل بیانوی.تپوس کوی چه قیامت به کله راځی؟لکه چه بل ځایٔ ارشاددې بې ایمانه د دې دپاره تندی کوی اوایمانداردې دویرې نه رچیږی.اوداحق ګنړی. الخ. جواب ورکوی چه ستاسو د پاره د وعدې ورځ مقرره شوې ده. په کوم کښې چه وړاندیوالې روستووالې کمې زیاتې ناممکن دې.لکه ﴿إِنَّ أَجَلَ اللَّهِ إِذَا جَاءَ لَا يُؤَخَّرُ لَوْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ (٣) نورنی اوفرمائیل ﴿وَمَا نُؤَخِّرُهُ إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ﴾ (٤) یعنی هغه مقررشوې وخت روستوکیږی نه. تاسو ته د دغه مقرر وخت پورې وخت دې کله چه هغه ورځ راغله بیابه څوك شوندې هم اونه خوزولې شی. په هغه ورځ به بعضې نیك بخت وی اوبعضې بدبخت.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | وَقَالَ الَّذِينَ | كَفَرُوا |
| | | | اووائی هغه کسان | چی کافران دی |
| | | | اودا کافران وائی چې | |
| لَن نُّؤْمِنَ | بِهَٰذَا الْقُرْآنِ | وَلَا بِالَّذِي | بَيْنَ يَدَيْهِ ۗ | وَلَوْ تَرَىٰ |
| هرګز مونږ نه منو | دا قرآن | اونه هغه کتاب | چې مخکښی ددې نه دي | اوکاش چی ته اووینې |
| مونږ به هیڅکله په دې قرآن باندې ایمان نه راوړو | | اونه په هغه کتاب چې ددې نه وړاندې نازل شوی وو | | |

(١) الطبری: ٢٠/٤٠٥.
(٢) صحیح بخاری کتاب التیمم باب نمبر:١، حدیث:٣٣٥و صحیح مسلم:٥٢١، احمد:١٤٥/٥.
(٣) ٧١/نوح:٤.
(٤) ١١/هود:١١٤..

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِذِ الظَّٰلِمُونَ | مَوْقُوفُونَ | عِندَ رَبِّهِمْ | يَرْجِعُ | بَعْضُهُمْ | |
| کله چې دا ظالمان خلق اودرولي شوی وي | په دربار درب خپل کښې | واپس کوی به | خینی دهغوئ | | |

اوکه ته هغه وخت اوګورې چې څه وخت دا ظالمان به خپل رب ته مخامخ اودرولې شی اپه یو بل باندې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِلَىٰ بَعْضٍ | الْقَوْلَ | يَقُولُ | الَّذِينَ | اسْتُضْعِفُوا | لِلَّذِينَ |
| خینی نوروته | خبره (داسې چې) | وانی به | هغه کسان | چې کمزوری ګنړلې شوی وؤ | هغه کسانوته |

به الزامونه لګوی | ..................کمزوری خلق به غټانو خلقو ته دا وائی چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اسْتَكْبَرُوا | لَوْلَا أَنتُمْ | لَكُنَّا | مُؤْمِنِينَ ۝ | قَالَ | |
| چې خان ئې غټ ګنړلې وؤ | که چرې نه وې تاسو | نو خامخا وؤ به مونږ | مومنان | اوبه وانی | |

که تاسو موجود نه وئ | نومونږ به ایمان راوړې وې | نو غټان به کمزورو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِينَ | اسْتَكْبَرُوا | لِلَّذِينَ | اسْتُضْعِفُوا | أَنَحْنُ | |
| هغه کسان | چې خان ئې غټ ګنړلې وؤ | هغه کسانوته | چې کمزوری ګنړلې شوی وؤ | آیا مونږه | |

ته جواب ورکړی | چې ایا تاسو مونږ دهدایت قبلولو نه منع کړی وئ | څه وخت چې هدایت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| صَدَدْنَاكُمْ | عَنِ الْهُدَىٰ | بَعْدَ | إِذْ جَاءَكُم | بَلْ كُنتُم | |
| منع کړی وئ تاسو | دهدایت نه | روستو دهغې نه | چې راغلې وؤ تاسو ته | بلکه وئ تاسو | |

تاسو ته راغلې وو ؟ | بلکه تاسو په خپله قصور کړې وو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُّجْرِمِينَ ۝ | وَقَالَ الَّذِينَ | اسْتُضْعِفُوا | لِلَّذِينَ | | |
| مجرمان | اواوبه وائی هغه کسان | چې کمزوری ګنړلې شوی وؤ | هغه کسانوته | | |

او کمزوری خلق به دغه غټانو ته اووائی چې (داخو) ستاسو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اسْتَكْبَرُوا | بَلْ مَكْرُ اللَّيْلِ | وَالنَّهَارِ | إِذْ تَأْمُرُونَنَا | | |
| چې خان ئې غټ ګنړلې وؤ | بلکه مکرونه دشپې وؤ | او دورځې وؤ | چې تاسو به حکم کوؤ مونږ ته | | |

دسبا بیګاه مکرونو مونږ منع کړی وو | چې تاسو به راته هروخت ویناګانې کولې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَن نَّكْفُرَ | بِاللَّهِ | وَنَجْعَلَ | لَهُ | أَندَادًا | وَأَسَرُّوا |
| چې مونږه کفر اوکړو | دالله سره | او جوړ کړو | هغه لره | شریک | او پټه به کړی دوئ |

چې مونږ دالله ﷻ نه انکار اوکړو | اوهغه دا چې هغه لره شریکان جوړ کړوا او

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّدَامَةَ | لَمَّا | رَأَوُا | الْعَذَابَ | وَجَعَلْنَا | الْأَغْلَالَ | فِي أَعْنَاقِ |
| پښیمانتیا | هر کله چې | اووینی دوئ | عذاب | اووابه چوؤ مونږه | پتئ | په څټونو کښې |

چې عذاب اووینی نو خپله پښیمانی به پټوی | ..........اومونږ به دهغوخلقو په غاړه کښې طوقونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْاط | هَلْ يُجْزَوْنَ | اِلَّا مَا | كَانُوْا | |
| دهغه كسانو | چې كفر ئې كړې دې | نه به وركړې كيږى بدله | مګر دهغه عمل | چې وو دوئ | |
| واچوؤاكومو چې كفر كړې دې | دوئ ته بهٔ هم دهغه عملونوسزا ملاويږى | كوم چې ئې كړې وى | | | |
| يَعْمَلُوْنَ۝ | | | | | |
| چې كوؤ به ئې | | | | | |
| وو | | | | | |

**قوله تعالى:- وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ**

**دٔ كافرانو نه منل اوسركشي:-** دكافرانودسركشئ اودباطل دضدبيان كولې شى چه هغوى فيصله كړې ده كه د قرآن پاك دحقانيت په زرګونودليلونه اووينى خومنى به ئې نه.بلكه ددې نه په وړاندې كتاب هم ايمان نه راوړى.دوى له به د خپلې وينا مزه هغه وخت راشى چه كله دالله ﷻ په وړاندې ددوزخ په غاړه په ولاړه ولاړه مشران كشرانوته اوكشران مشرانو ته الزامونه وركوى اوهريويه بل قصوروار ګڼړى. تابعداران به خپلوسردارانوته وائى كه تاسومونږ نه رامنع كولو نومونږ به خامخا ايمان راوړلې وو.د هغوى مشران به هغوى له جواب وركوى چه آيا مونږ تاسو رامنع كړې وئى؟مونږ يوه خبره اوكړه تاسو ته پته وه چه دابې دليله خبره ده.

بل طرف ته د دليلونوياران په تاسو راوريدو اوستاسو دستركو په وړاندې وو بيا تاسو د هغه تابعدارى پريخوده زمونږه مو ولې منل؟ ستاسو خپله بې عقلى وه اوستاسو پخپله شهوت خوښ وو.ستاسو خپل زړونه دالله ﷻ دخبرونه تختيدل.درسولانوتابعدارى پخپله ستاسو په ځانونواوطبيعتونوباندې ګرانه او سخته تيريده.ټول قصور هم ستاسو خپل وو مونږ ته ولې الزام راكوئې؟دابې دليله دخپلوبزرګانو منونكى به بياجواب وركړى چه شپه ورځ ستاسودهوكه بازى جعل سازى مكرفريب مونږ ته تسلى راكړه چه زمونږ افعال اوعقيدې ټيك دى.مونږ ته باربارد كفراوشرك نه پريخودل زوړدين نه بدلول د پلارانونيكونو په زړو طريقو قايم اودريدل اوزمونږ ملا ټپول همدغه سبب شوزمونږد ايمان نه د بنديدلوهم تاسوبه راتلئى اوددروغو عقلى خبرې به موراته كولې اوداسلام نه به مواړول.دواړه الزامونه به هم وركوى اوصفائى به هم كوى خوپه زړه كښې په خپلو كړو باندې پښيمانه وو.

**قوله تعالى:- وَجَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ فِيْۤ اَعْنَاقِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْاط**

د دې ټولولاسونه به سټ سره په طوق اوزنځير سره اوتړلې شى.اوس به هريوته د هغه د اعمالو مطابق بدله وركولې شى. ګمراه كونكوته هم اوګمراه كړې شووته هم. هريوته به پوره پوره عذاب وركولې شى. رسول الله ﷺ فرمائى چه كله دوزخيان د دوزخ د رسولود پاره اوشړلې شى نوددوزخ د يوې لمبې په وجه به دهغوى دبدن ټوله غوښه اوسوزى او پښو كښې به ئې راپريوځى.

ابن ابى حاتم كښې حسن بن يحيى نعشى رحمه الله فرمائى چه د دوزخ په هره يوه قيدخانه كښې هريوغر اوهريوزنځير په هريوقيدباندې به د دوزخى نوم ليكلې وى.كله چه د سليمان دارانى رحمه الله په وړاندې دا بيان كړه نو هغوى ډير خفه شو او وئى فرمائيل هائې هائې بيابه څنګه حال وى په هغه باندې چه دا ټول عذابونه پرې اچولې شوى وى. په پښوكښې بيړئى وى په لاسونوكښې هتكړئى په سټ كښې طوق وى بيا د دوزخ غارته ورديكه كړې شى. الله ﷻ دې مونږ بچ كړى اومونږ دې الله سلامت اوساتى.اللهم سلم اللهم سلم.

وَمَآ أَرۡسَلۡنَا فِي قَرۡيَةٖ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ
| اونهٔ دي لیږلي مونږه | په یوکلي کښې | څوك یرونکي | مګر | اووئیل
| اومونږ چې کوم کلي ته هم یو پیغمبر لیږلي دي | نو دهغې کلي
مُتۡرَفُوهَآ إِنَّا بِمَآ أُرۡسِلۡتُم
مالدارو خلقو دهغه کلي | بیشکه مونږه | په هغه پیغام سره | چې رالیږلي شوی یئ تاسو
مالدارو به وئیل | ............ چې تاسو کوم حکمونو راوړی دی مونږ د هغې نه
بِهِۦ كَٰفِرُونَ ۝٣٤ وَقَالُواْ نَحۡنُ أَكۡثَرُ أَمۡوَٰلٗا
په هغې سره | نهٔ منونکي یو | اواووئیل هغوئ | مونږه | زیات یو | په لحاظ دمال سره
انکار کوو | .......... اوهغوئ دا هم وئیلي دی | چې مونږ د مال او اولاد په لحاظ سره ستاسو
وَأَوۡلَٰدٗا وَمَا نَحۡنُ بِمُعَذَّبِينَ ۝٣٥ قُلۡ إِنَّ رَبِّي يَبۡسُطُ
اواولاد سره | اونهٔ یو مونږه | عذابیدونکي | ورته اووایه | بیشکه رب زما | فرانبه کوی
نه ډیر زیات یو | اومونږ ته به هیڅ عذاب نشي راکولي | ته ورته اووایه چې زما رب
ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَ ٱلنَّاسِ
رزق | دپاره دهغه چا | چې غواړی هغه | او په اندازه کوی رزق | ولیکن | زیات دخلقو نه
دچا باره کښې اوغواړی | نو روزی ورته فراخه کړی | یا (روزی) ورته تنګه کړی | خوزیات خلق په دې
لَا يَعۡلَمُونَ ۝٣٦ وَمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُم بِٱلَّتِي
نهٔ پوهیږی په حقیقت | اونهٔ دی مالونه ستاسو | اونهٔ اولاد ستاسو | داسې څیز |
خبره نه پوهیږی | او ستاسو دا مالونه او اولاد تاسو زمونږ په دربار کښې
تُقَرِّبُكُمۡ عِندَنَا زُلۡفَىٰٓ إِلَّا مَنۡ ءَامَنَ
چې نزدې کوی تاسو | مونږ ته | په نزدیکت سره | ماسوا | دهغه چانه | چې ایمان ئې راوړو
نزدې کولي نشي | ............البته هغه خلق چې ایمان راوړی | او هغوئ نیک
وَعَمِلَ صَٰلِحٗا فَأُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ جَزَآءُ ٱلضِّعۡفِ
او عمل ئې اوکړو نیك | پس دا خلق دي | چې ده دپاره ددوئ | بدله | ددوچندوالي |
عمل هم اوکړی | نو هغوئ ته بهٔ دخپل عمل دوچنده بدله ورکولي شي
بِمَا عَمِلُواْ وَهُمۡ فِي ٱلۡغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ ۝٣٧
په سبب دهغې عملونو | چې کړی دی دوئ | او دوئ به | په دنګو ماڼړو کښې | په امن سره وسی
اوهغوئ به د جنت په بالاخانو کښې په امن سره اوسیږی|

وَالَّذِيْنَ يَسْعَوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا مُعٰجِزِيْنَ

او هغه کسان | چې کوشش کوی | په آیتونو زمونږ کښې | دپاره دعاجزه کولو (دآیتونو زمونږ) |

او کوم خلق چې زمونږ دآیاتونو د ناکامه کولو کوشش کوی

اُولٰٓئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُوْنَ ﴿﴾ قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ

دا کسان به | په عذاب کښې | حاضر کړې شوی وی | ورته اووایه | بیشکه رب زما | فراخه کوی رزق

نوهغوی به عذاب ته ورمخامخ کړې شی | ...........ورته اووایه چې زما رب په خپلو بندګانو کښې

لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ؕ وَمَآ

دپاره دهغه چا | چې غواړی | دبندګانو خپلو نه | او په اندازه کوی رزق | دپاره دهغه | او هغه

چې دچا دپاره اوغواړی روزی فراخه کوی | اوچا دپاره چې اوغواړی نو روزی تنګوی | او څه چې

اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَيْرُ

چې خرچ کوئ تاسو | څه څیز | پس هغه | دهغې په ځانې نور درکوی | او هغه | بهتره

دالله ﷻ په لار کښې خرچ کوئ | نوهغه به دهغې بدله درکوی | او هغه ډیر ښه روزی

الرّٰزِقِيْنَ ﴿﴾

رزق ورکونکې دې |

ورکونکې دې |

قوله‌تعالی:- وَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ

**رسول الله ﷺته تسلی ورکول:-** الله ﷻ خپل نبی پاك ﷺ ته تسلی ورکوی اود وړاندینو پیغمبرانو په شان اخلاق ساتلود پاره ورته فرمائی چه کوم یوکلی ته کوم یورسول تلې دې دهغه مقابله شوې ده. لویوخلقو کفرکړې اوغریبانانوتابعداری کړې ده. لکه چه دنوح ﷺ قوم خپل نبی ته ونیلې وو ﴿ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴿﴾ ﴾([1]) مونږ په تاباندې څنګه ایمان راوړوستامنونکی خو ټول د ښکته درجې خلق دی. هم دا مضمون په دویم آیت ﴿وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ اِلَّا الَّذِيْنَ هُمْ اَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّاْيِ ۚ وَمَا نَرٰى لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍۭ بَلْ نَظُنُّكُمْ كٰذِبِيْنَ ﴿﴾ ﴾ ([2])کښې دې. دصالح ﷺ د قوم کبرژن خلق ضعیفانوته وائی ﴿اَتَعْلَمُوْنَ اَنَّ صٰلِحًا مُّرْسَلٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قَالُوْٓا اِنَّا بِمَآ اُرْسِلَ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿﴾ ﴾([3])آیاتاسو د حضرت صالح ﷺ د نبی کیدو یقین دې؟ هغوی ونیل اومونږخومومنان یو نو هغه کبرژنوصفا اوونیل چه مونږ خوئی نه پیژنو. یوبل آیت کښې دی ﴿ وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُوْلُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَعْلَمَ بِالشّٰكِرِيْنَ ﴿﴾ ﴾([4])یعنی دغه شان مونږ یو په بل سره فتنه کښې واچولو دې دپاره چه هغوی اووانی چه هم داخلق دی په چاباندې چه الله ﷻ په مونږ ټولوکښې احسان اوکړوالله ﷻ شکرکونکی نه پیژنی؟یوبل ارشاد دې چه په هریوکلی کښې دهغې غټان خلق مجرم اومکار وی. یوبل

---

[1] ٢٦/الشعراء:١١١.

[2] ١١/هود:٢٧.

[3] ٧/الاعراف:٧٥.

[4] ٦/الانعام:٥٣.

ارشاد دي﴿وَإِذَآ أَرَدْنَآ أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا۟ فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا ٱلْقَوْلُ فَدَمَّرْنَٰهَا تَدْمِيرًا﴾(۱)کله چه ديوکلي مونږ د هلاکت اراده اوکړونو دهغې سرکشه خلقو ته څه احکام ورکوو هغوی ئې نه مني بيائې مونږ هلاك کړو. نودلته هم فرمائي چه مونږ کوم يوکلي ته نبي اورسول ليګلې د هغه ځائ شان اوشوکت والا مالداران او سرداران اولويو خلقو ډير زر د خپل کفر اعلان کړې دې.

**هره زمانه کښې د نبي تابعدران کمزوري خلق وي:**-ابن ابی حاتم کښې دی ابورزين ﷺ فرمائي دوه کسان په خپل مينځ کښې شريك وو يود سمندر نه اخوا لاړو اوبل هم هلته پاتې شو.کله چه د رسول الله ﷺ بعثت اوشو نوهغه خپل ملګرى نه په ليکلو سره معلومه کړه چه د حضورﷺ څه حال دې؟هغه په جواب کښې اوليکل چه ښکته اوپريوتې خلق دهغه خبره مني.شريفانو قريشودهغه اطاعت نه دې کړې. هغه خط لوستلوسره هغه خپل تجارت اومعاملات پريخودل او زر خپل شريك له راغلو دا ليك لوست والا سړې وو.دآسماني کتابونو په علم پوهيدلو.دهغه نه ئې تپوس اوکړواوښايه رسول الله ﷺ چرته دې؟ معلومه ئې کړه اودحضورﷺ په خدمت کښې حاضرشو. د حضورﷺ نه ئې تپوس اوکړو تاسو خلق د کوم خيزطرف ته رابلئي حضورﷺ ارکان اسلام دهغه په وړاندې بيان کړل هغه زر ايمان راوړو.حضورﷺ اوفرمائيل چه تاددې تصديق ولې اوکړو؟ هغه ونيل په دې خبره چه د ټولوانبياوکرامو د شروع په زمانه کښې هميشه ضعيفان اومسکينان خلق په هغوی باندې ايمان راوړونکی وی. په دې باندې دا آياتونه نازل شو حضورﷺ هغه پسې سړې اوليګلو اوورته ئې اوونيل چه ستاد خبرې صداقت الله ﷻ نازل کړو.

**هرقل هم دابوسفيان نه دغه شان سوال کړې وو:**-دغه شان هرقل ونيلې کله چه هغوی د ابوسفيان نه د هغوی د جاهليت د زمانې متعلق تپوس کړې ووچه آياشريفانوخلقودهغه تابعداری کړې که ضعيفانو؟ نوابوسفيان جواب ورکړې وو چه ضعيفانو. په دې باندې هرقل ونيلې وو چه د هررسول اول تابعداری کونکی هم دغه ضعيفان خلق وی. (۲)

**قوله تعالى:-**﴿وَقَالُوا۟ نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَٰلًا وَأَوْلَٰدًا﴾

بيافرمائي چه دا خوشحاله خلق په خپل مال او اولادباندې فخرکوی اودا دليل جوړوی د دې خبرې چه هغوی د رب خوښ دی. که د الله ﷻ خاص پرزونې او مهربانئي په هغوی باندې نه وې نودوی ته به ئې دا نعمتونه نه ورکول. اوچه کله دلته رب مهربان دې نو په آخرت کښې به هم هغه مهربان وی. قرآن پاك هرځائ د دې ردکړې دې.

يوبل ځائ ارشاد دې﴿أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِۦ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ﴾(۳) آيادهغوی داخيال دې چه دمال اولاد کثرت د هغوی دپاره بهتردې؟نه بلکه دا خرابوالې دې خوهغوی بې عقله دی.يوبل آيت کښې دی ﴿فَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَٰفِرُونَ﴾ (۴)دهغوی مال اولاددې تا په دهوکه کښې وانچوی. پدې سره به د هغوی په دنياکښې هم سزا کولې شی اوترمرګه پورې به هم دوی په کفرباندې وی. يوبل آيت دی ﴿ذَرْنِى وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا﴾ (۵) يعنی ما او هغه سړې پريږدئی کوم چه ما پيداکړې دې يوازې اوبيا کثرت سره مې مال ورکړې دې اوتابعدار خامن مې ورکړی دی اوهغه ته مې هر قسم عيش ورکړې او هغه دا طمع ده چه زه هغه ته نورهم زيات ورکړم. داسې نه ده دې زمونږ د

(۱) ۱۷/الاسراء:۱٦.

(۲) صحيح بخارى کتاب بدء الوحى باب کيف کان بدء الوحى الى رسول اللهﷺ:۷،صحيح مسلم:۱۷۷۳.

(۳) ۲۳/المؤمنون:۵۵.

(۴) ۹/التوبه:۸۵.

(۵) ۷٤/المدثر:۱۱.اع

اياتونو مخالف دي لړه زمانه پاتې ده چه دي به زه د دوزخ په غرونوباندې ورخيژوم. د هغه سړي واقعه هم ذكر شوې ده د چاچه دوه باغونه وو دمال والا وو اوداولاد والا وو خويوڅيز هم فائده ورنه كړه. د الله ﷻ په عذاب سره ټول هر څه هم په دنياكښې تباه كړې شو او تورې خاورې شو.

**مال او اولاد نه بلكه ايمان او عمل د كاميابى نخښه ده:-** الله ﷻ چه د چارزق زياتول غواړى نو زياتوى اوالله ﷻ چه دچارزق كمول غواړى نوكموى.دنياخوهغه خپلو دوستانواودښمنانوټولوته وركوى. غنى يا فقير كيدل دهغه درضااونارضادليل نه دې بلكه پدې كښې نورحكمتونه وى كوم چه اكثرخلق نه پيژنى. مال اولادوركول زمونږدپرزونې دليل جوړول غلط دى.داڅه زمونږبه نيزدمرتبه زياتولوڅيزنه دې. رسول الله ﷺ فرمائى چه الله ﷻ ستاسو صورتونواوشكلونوته نه ګورى بلكه زړونواو عملونوته ګورى. ([1])

اود هغه په نيزباندې درجواوچتولوڅيز ايمان او نيك عمل دې. د هغوى د نيكو په بدله كښې به هغوى له ډيرې زياتې بدلې وركولې شى.يوه يوه نيكى به لس لس چنده بلكه اووه سوه كولې شى.دجنت په اوچتو منزلونواو درجوكښې به دهرې ويرې خفګان غم نه به په امن كښې وى.هيڅ غم تكليف به نه وى او نه به څه سزا او صدمه وى. رسول الله ﷺ فرمائى په جنت كښې به داسې بالاخانې وى دكوم ظاهرچه به دباطن نه اوباطن دظاهر نه ښكارى. يواعرابى ونيل دابالاخانې د چاد پاره دى؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه څوك نرمې خبرې كوى په نورو بندې خوراك كوى او په كثرت سره روژې ساتى اود خلقو د خوب په وخت كښې تهجد كوى. ([2])

كوم خلق چه د الله ﷻ د لارې نه نور خلق منع كوى د رسول الله ﷺ د تابعدارئى نه خلق منع كوى اود الله ﷻ دآياتونوتصديق ته نى نه پريږدى هغوى به د دوزخ سزاګانوكښې حاضرولې شى خرابه بدله به وركوى.بيا فرمائى چه الله ﷻ دخپل كامل حكمت مطابق چاته چه غواړى ډيره زياته دنياوركوى اوچاله چه غواړى ډيره كمه وركوى. دې په آرم دې اوهغه په غم دردكښې اخته دې. د رب حكمتونو باندې هيڅ څوك نه پوهيږى دهغه مصلحتونه هم هغه ښه پيژنى.لكه چه فرمائى ﴿أَنظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ وَلَلْآخِرَةُ أَكْبَرُ دَرَجَاتٍ وَأَكْبَرُ تَفْضِيلًا﴾([3]) ته ګوره چه مونږ څنګه يوله په بل باندې فضيلت وركړې دې اوآخرت په درجو كښې اوفضيلتونوكښې ډيرلوئ دې.لكه څنګه چه مالدارى اوغريبى سره ددرجوښكته والى پورته والى دلته دې دغه شان به په آخرت كښې هم د اعمالومطابق هم درجې اومرتبې وى.نيكان خلق به دجنت په اوچتوبالاخانوكښې اوبدان خلق به ددوزخ په ښكته طبقه اوجيل خانوكښې وى.په دنيا كښې دټولونه بهتر سړې درسول الله ﷺ د فرمان مطابق هغه دې چه رښتونې مسلمان وى او په اندازه د كفايت رزق وررسى اود الله ﷻ د طرف نه ورته صبرهم وركړې شوې وى. ([4])

**قوله تعالى:- وَمَا أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ**

**دانفاق فى سبيل الله فضيلت:-** دالله ﷻ دحكم يادهغه د اباحت لاندې كوم څه چه خرچ كونى دهغې بدله به هغه تاسو له په دواړه جهانه دركوى. په صحيح حديث كښې دى ته خرچ كوه نوپه تاباندې به هم خرچ اوكړې شى.يوبل حديث كښې دى چه هرسحريوه فرښته دعاكوى اې الله ﷻ دبخيل مال ختم اوبرباد كړې.دويمه دعاكوى اې الله ﷻ خرچ كونكى له نيكه بدله وركړه([5])حضرت بلال ﷺ ته حضور اكرم ﷺ

---

[1]) صحيح مسلم كتاب البر والصلة باب تحريم ظلم المسلم وخذله.....:٢٥٦٤.

[2]) ترمذى كتاب صفة الجنة باب ماجاء فى صفة غرف اهل الجنة:٢٥٢٧وهوحسن، ابن ابى شيبه:٢٦٥/٨، مسندابى يعلى:٤٢٨. (ابن ابى حاتم)

[3]) ١٧/الاسراء:٢١.

[4]) صحيح مسلم كتاب الزكاة باب فى الكفاف والقناعة:١٠٥٤، ترمذى:٢٣٤٨، ابن ماجه: ٤١٣٨، احمد: ١٦٨/٢

[5]) صحيح بخارى كتاب الزكاة باب قوله تعالى ﴿فامامن اعطى واتقى...﴾:١٤٤٢، صحيح مسلم:١٠١٠.



يوخل اوفرمائيل اې بلال خرچ کوه او عرش والا د طرف نه د تنګنې خيال هم مه کوه(۱)ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی ستاسود دې زمانې نه پس داسې زمانه راتلونکې ده چه پرې کونکې خوړونکې ده.مال به وی خو مالدار به په خپل مال باندې داسې غابنونه ورخښ کړې وی چه چرته خرچ نه شی.بيا حضوراکرم ﷺ د دې آيت ﴿ وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ۝ ﴾ (۲) تلاوت اوکړو.

**بد ترين خلق:-** بل حديث شريف کښې دی بدترين خلق هغه دی چه د بې وسه او بې قراره خلقو څيزونه په کم قيمت باندې اخلی ګرځی يادساتئی داسې بيع حرام ده.دبې قراره بيع حرام ده.مسلمان د مسلمان رور دې نه دې هغه باندې ظلم کوی اونه دې هغه رسواکوی. که تانه کيدې شی نونورو خلقو سره ښه سلوک او ښيګړه کوه د هغه هلاکت ته مه زياتوه. داحديث په دې سندسره غريب دې اوضعيف هم دې. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه د دې آيت غلط مطلب وانخلئی په خپل مال کښې په ميانه روئی سره خرچ کوه. روزئی تقسيم شوی دی رزق مقسوم دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ | | يَحْشُرُهُمْ | جَمِيْعًا | ثُمَّ | |
| او په کومه ورځ | | چې به راجمع کړی هغه دا انسانان | ټول | بيا | |
| او په کومه ورځ چې الله ﷻ دوئ ټول راجمع کړی | | | | .........نود | |
| يَقُوْلُ | لِلْمَلٰٓئِكَةِ | اَهٰٓؤُلَآءِ | اِيَّاكُمْ | كَانُوْا | يَعْبُدُوْنَ۝ |
| به اووائی | فرښتو ته | ايا دا خلق وو | چې تاسو لره به ئې | عبادت | کولو |
| فرښتو نه بهٔ تپوس اوکړی \| چې ايا دې خلقو بهٔ ستاسو عبادت کولو | | | | | |
| قَالُوْا | سُبْحٰنَكَ | اَنْتَ وَلِيُّنَا | مِنْ دُوْنِهِمْ ۚ | بَلْ كَانُوْا | |
| اوبه وائی فرښتې | پاکی ده تالره | ته مولې ئې زمونږ | بې ددوئ نه | بلکه وو دوئ | |
| هغوئ به اووائی چې (ائې زمونږ ربه) ته پاک يئې \| زمونږ تعلق خو تاسره دې \| دوئ سره نه دې | | | | | |
| يَعْبُدُوْنَ | الْجِنَّ ۚ | اَكْثَرُهُمْ | بِهِمْ | | |
| چې عبادت به ئې کوو | دپيريانو شيطانانو | زيات خلق ددوئ | په دې پيريانو شيطانانو باندې | | |
| حقيقت دادې \| چې دوئ خو بهٔ د پيرانو عبادت کولو \| په دوئ کښې زياتو خلقو په پيريانو | | | | | |
| مُّؤْمِنُوْنَ۝ | فَالْيَوْمَ | لَا يَمْلِكُ | بَعْضُكُمْ | | |
| ايمان راوړونکی وو | (اوبهٔ فرمائی الله) پس نن ورځ به | اختيار نهٔ لری | خينی ستاسو | | |
| ايمان لرلو \| .........نو نن تاسو کښې څوک يو بل ته دنفع يا | | | | | |
| لِبَعْضٍ | نَّفْعًا | وَّلَا ضَرًّا ؕ | وَنَقُوْلُ | لِلَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا |
| دپاره دخينو | دنفعې رسولو | اونهٔ دضرر رسولو | اواوبه وايو مونږه | هغه کسانوته | چې ظلم ئې کړی وی |
| نقصان رسولو قدرت نه لری \| .........او مونږ به ظالمانو ته اووايو چې | | | | | |

---
(۱) طبران: ۱۰۲۰.
(۲) ۳٤/سبا:۳۹.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ذُوْقُوْا | عَذَابَ النَّارِ | الَّتِيْ | كُنْتُمْ | بِهَا | تُكَذِّبُوْنَ ۝ |
| اوڅکئ | عذاب دوور | هغه | چي وئ تاسو | په هغې | چي دروغ به مو ګڼړلو |
| ددې اور دعذاب مزه اوڅکئ کوم چې بهٔ تاسو دروغ ګڼړلو | | | | | |

قوله تعالی:- ثُمَّ يَقُوْلُ لِلْمَلٰٓئِكَةِ

د الله ﷻ دفرښتو سوال:مشرکان شرمنده کول بې جوابه کولو اوبې عذره کولوډپاره به دفرښتونه سوال کولې شی دکوموچه دځان نه دوی شکلونه جوړکړې وواودې مشرکانوبه په دنیاکښې دهغوی عبادت کولوچه هغوی به دوی الله ﷻسره ملاوکړې.سوال به کولې شی چه آیاتاسودوی ته دځپل عبادت کولو ونیلې وو؟لکه چه په سورت فرقان کښې دی﴿ ءَاَنْتُمْ اَضْلَلْتُمْ عِبَادِیْ هٰٓؤُلَآءِ اَمْ هُمْ ضَلُّوا السَّبِيْلَ ۝﴾(١)یعنی آیا تاسودوی ګمراه کړې وو؟ که دوی پخپله دهوکه شوې وو؟دحضرت عیسی ﷺ نه به سوال کولې شی چه آیا تا دې خلقو ته ونیلې وو راغلې وې چه الله ﷻ پریږدئی زما اوزما د مور عبادت کوئی.هغه به جواب ورکړې اې الله ستا ذات پاك دې ماته چه د کوم څيز وینا کول ضروری نه وو مابه څنګه ونیل. دغه شان به فرښتې هم خپل ځان خلاص کړې وائی به ته خو د دې نه ډیراوچت او لوئ نې چه ستادې څوك شريك وی مونږ خو پخپله ستا بندیګان یو. مونږ د دوی نه ویزاره وو اواوس هم دوی نه جدایو.دوی به دشيطانانوعبادت کولوهم شیطانانود دوی دپاره بتانوعبادت ښائسته کړې وو او دوی نې ګمراه کړې وو. په دوی کښې د اکثرو عقیده هم په شیطان باندې وه.

لکه څنګه چه د الله ﷻ ارشاد دې﴿ اِنْ يَّدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اِنٰثًا ۚ وَاِنْ يَّدْعُوْنَ اِلَّا شَيْطٰنًا مَّرِيْدًا ۝ لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا ۝﴾(٢)یعنی دې خلقوالله تعالی پریخې دې اود ښځوعبادت کوی اودسرکش شیطان عبادت کوی.په کوم چه د الله ﷻ غصه ده.نوچه کومو کومو سره اې مشرکانوتاسو مینه ساتلې وه په هغوی کښې یوهم تاسوته څه نفع دراونه رسولې شوه. ددې سختئی اوعذاب په وخت کښې به داټول د دروغومعبودان تاسونه یودم لرې شی.ځکه چه هغوی ته دچاته دڅه څیزد نفع ورکولو هیڅ اختیارد سره وونه.نن به مونږ پخپله مشرکانوته وایوچه واخلئی کوم ددوزخ عذاب مودروغ ګڼړلونن دهغې مزه اوڅکئی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذَا تُتْلٰى | عَلَيْهِمْ | اٰيٰتُنَا | بَيِّنٰتٍ | قَالُوْا | مَا هٰذَآ |
| او کله چې لوستلې کیږی | په دې خلقو باندې | ایتونه زمونږ | صفا واضحه | نو وائی دوئ | نه دې دا |
| او هرکله چې بهٔ دوئ ته زمونږ ښکاره ایتونه بیانولی شوا نو دوئ به وئیل چې دا(پیغمبر) | | | | | |
| اِلَّا | رَجُلٌ | يُّرِيْدُ | اَنْ يَّصُدَّكُمْ | عَمَّا | كَانَ يَعْبُدُ |
| مګر | یو سړې دې | چې غواړی | چې منع کړی تاسو | دهغه معبودانونه | چې عبادت به نې کولو |
| خو یو داسې سړې دې چې تاسو دهغه بتانو نه منع کوی دکومو چې بهٔ ستاسو پلار نیکه | | | | | |
| اٰبَآؤُكُمْ ۚ | وَقَالُوْا | مَا هٰذَآ | اِلَّآ | اِفْكٌ | مُّفْتَرًى ۭ | وَقَالَ |
| پلارانو ستاسو | اووائی دوئ | نه دې (داقرآن) | مګر | دروغ دی | دخانه نه جوړ کړې شوئ | اووائی |
| عباد ت کولو او دوی وائی چې داقرآن خو جوړ شوې دروغ دی اوڅه وخت چې کافرانوته | | | | | | |

(١) ٢٥/الفرقان:١٧.

(٢) ٤/النساء: ١١٧-١١٨.

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ۙ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

هغه كسان | چې كافران شوي دي | حق ته | هر كله چې راغې دوئ ته | چې نه دې دا | مگر

حق راغلو | ..........زنوهغوی اووئيل چې دا خو ښكاره

سِحْرٌ مُّبِيْنٌ۝ وَمَآ اٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ كُتُبٍ يَّدْرُسُوْنَهَا

جادو دی | ښكاره | اونۀ دی وركړی مونږ دوئ له | څه كتابونه | چې گنی لولی هغه

جادو دی | او مونږ دوئ ته داسې (آسمانی الهامی) كتابونه نه وو وركړی | چې گنی دوئ بۀ لوستل

وَمَآ اَرْسَلْنَآ اِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِنْ نَّذِيْرٍ۝ ؕ وَكَذَّبَ الَّذِيْنَ

اونۀ وو ليږلي مونږ | دوئ ته | مخكښې ستانه | څوك يرونكي | او دروغ گنړلي وو | هغه كسانو

او مونږ ستاسونه وړاندې دوئ ته هيڅ ويرونكې نه وو ليږلې | او (دغسې) ددوئ نه مخكنو خلقو

مِنْ قَبْلِهِمْ ۙ وَمَا بَلَغُوْا مِعْشَارَ مَآ اٰتَيْنٰهُمْ

چې مخكښې ددوئ نه وو | اونۀ دی رسيدلی دوئ السمې برخې ته | دهغې | چې وركړی وو مونږ هغوئ ته

هم (پيغمبران) دروغژن گنړلی وو | او مونږ چې هغوئ ته څه وركړی وو | هغوی دهغې لسمه برخه

فَكَذَّبُوْا رُسُلِيْ ۚ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ۝ ع

پس دروغ اوگنړل هغوئ | رسولان زما | پس څه رنگې | وو | عذاب زما |

هم نه دی | خو هغوئ زما پيغمبران دروغ اوگنړل | نو زما دطرفنه پرې څنگه عذاب راغلو |

قوله تعالى:- وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

**د قران پاک د منكرينو د خباثتونو ذكر او دهغوئ انجام :-** دكافرانوهغه شيطانې بيانيږی د كوم په وجه چه هغوی درب دعذابونو مستحق شوی دی. دالله ﷻ كلام تازه په تازه دهغوی غوره رسول ﷺ په ژبه اوری قبلول منل اوددې مطابق عمل كول خويوطرف ته وائي چه گورئی داسړې تاسودخپل زور اوربښتونی دين نه منع كوی اودخپلو باطلوخيالونوطرف ته تاسو راغواړی. داقرآن پاك خو ده پخپله جوړكړې دې اودخپل خان نه نی بيانوی اوداخو جادو دې اود دې جادو څه پته خبره نه ده بالكل ښكاره دې.بيا فرمائي چه نه خودې عربوته اول څه كتاب نازل شوې دې اونه دحضوراكرم ﷺ نه دوی ته څوك رسول راغلې دې. پدې وجه د دوی دمودو خواهش وو كه مونږ كښې څوك رسول د الله ﷻ راغلې وواوبه مونږ باندې د الله ﷻ كتاب نازل شوې وې نومونږ به د ټولونه زيات تابعدار اوپابند وو.خوچه كله الله ﷻ د دوی دزړه دا ارمان پوره كړونولگياشو په انكاراوتكذيب كښې.ددې نه د وړاندينوامتونونتيجې د هغوی مخې ته دی. هغوی په قوت اوطاقت مال اومتاع كښې اوپه دنياوی اسبابوكښې د دوی نه ډير زيات وو.اودوی خولااوس دهغوی لسمې حصې ته هم نه دی رسيدلې.خوزما د عذابونو په وخت كښې نی نه مال په كاراغلو اونه خاندانونه اونسبونه په كارراغله نه هغه قوت اوطاقت هغوی ته څه فائده وركړه بربادكړې شو.

لكه چه ارشاد دې ﴿ وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ فِيْمَآ اِنْ مَّكَّنّٰكُمْ فِيْهِ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَّاَبْصَارًا وَّاَفْئِدَةً ۖ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ اَبْصَارُهُمْ وَلَآ اَفْئِدَتُهُمْ مِّنْ شَيْءٍ اِذْ كَانُوْا يَجْحَدُوْنَ ۙ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ۝ ﴾[1] يعنی مونږ هغوی ته قوت اوطاقت

---

[1] ٤٦/الاحقاف:٢٦.

ورکړې وو سترګې اوغوږونه ئې هم لرل زړه ئې هم وو خوزمابه ایاتونوباندې دانکارپه وجه په هغوی چه کوم عذاب راغلو هغه وخت هیڅ څیز هیڅ فائده ورنه کړه اوچاپورې چه به ئې ټوقې کولې هم هغوی دوی راګیر کړل.آیاداخلق په زمکه ګرځیدوسره دوراندینوخلقوانجام ته نه ګوری.چه ددوی نه په شمیر کښې زیات اوپه طاقت کښې وراندې وو.مطلب دادې چه د رسولانوپه تکذیب کولوسره دوی اوره کړې شو د جرړې نه راویستلې شواوغورزولې شو.ته ګوره اوغوراوکړه چه ماڅنګه د خپلو رسولانو نصرت اوامداد اوکړواوڅنګه مې په تکذیب کونکوباندې عذاب راکوزکړو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| قُلْ اِنَّمَآ | اَعِظُكُمْ | بِوَاحِدَةٍ | اَنْ تَقُوْمُوْا |
| ورته اووایه بیشکه همدا خبره ده | چې زۀ نصیحت کوم تاسو ته | په یوې خبرې سره | چې ودریږئ تاسو |
| (اې پیغمبره) اووایه چې زۀ درته د یوې خبرې نصیحت کوم \| هغه دا چې تاسو خاص دالله ﷻ دپاره دوه دوه | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِلّٰهِ | مَثْنٰى | وَفُرَادٰى | ثُمَّ تَتَفَكَّرُوْا | مَا بِصَاحِبِكُمْ |
| خاص دپاره دالله | دوه دوه | او یو یو | بیا فکر اوکړئ | نشته په ملګری ستاسو باندې |
| او یو یو اودریږئ بیافکر اوکړئ ستاسو دا ملګرې (پیغمبر یقیناً) لیونې نه دې | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ جِنَّةٍ | اِنْ هُوَ | اِلَّا | نَذِيْرٌ | لَّكُمْ | بَيْنَ يَدَيْ | عَذَابٍ |
| څه لیونتوب | نه دې هغه | مګر | خبردارونکې | تاسو لره | مخکښې (دراتلو) | دعذاب |
| ..........دې خو ستاسو دپاره دسخت عذاب راتلونه وړاندې ویرونکې دې | | | | | | |
| شَدِيْدٍ | | | | | | |
| سخت نه | | | | | | |

**قوله تعالى:- قُلْ اِنَّمَآ اَعِظُكُمْ بِوَاحِدَةٍ**

**پیغمبر ﷺ مجنون نه دې** :-حکم کولې شی چه کافران تاته مجنون وائی دوی ته اووایه چه یوکارخو اوکړئ چه په خلوص سره دښمنی اوضدپریږدئی اولږ شان پخپل مینځ کښې سوچ اوکړئ یوبل نه معلومات اوکړئی چه آیا محمد ﷺ مجنون دې؟اوپه ایماندارئی سره یوبل ته جواب ورکړئ. هرسړې دې خان خان سره هم سوچ اوکړی اویوبل نه دې هم تپوس اوکړی خوداشرط دې چه ضد اودښمنی پریږدئی. تاسوته به پخپله پته اولګی اوستاسو زړه به آواز اوکړی چه په حقیقت کښې رسول الله ﷺ ته جنون نشته بلکه هغه پخپله ستاسو خیر خواه اودرد منددې. د یوراتلونکې خطرې نه د کومې نه چه تاسوېې خبره نی تاسو خبروی.

**قوله تعالى:- اَنْ تَقُوْمُوْا لِلّٰهِ مَثْنٰى وَفُرَادٰى**

**ددې نه مونځ مراد اخستل صحیح نه دی**:-بعضې خلقو د دې آیت نه خان له اوپه جمع سره مونځ کول مراد اخستې دې اوددې په ثبوت کښې یوحدیث شریف هم پیش کړې دې.خوهغه حدیث ضعیف دې چه حضور ﷺ فرمائیلی دی ماله درې څیزونه راکړې شوی دی چه مانه اول نه دی ورکړې شوی اودا زه د فخرپه وجه نه وایم. زماد پاره د غنیمت مال حلال کړې شوې دې مانه وړاندې هغه د چادپاره هم حلال نه وو.هغوی به دغنیمت مال راجمع کولواوسیزلوبه ئی. اوزه د هریو سور اوسپین طرف ته لیګلې شوې یم هریونبی هم دخپل قوم طرف ته لیګلې کیدو.زماد پاره ټوله زمکه جمات اود اودس څیز جوړکړې شوې دې چه زه ددې په خاوره تیمم کوم اوکوم ځائ کښې چه هم یم اودمانځه وخت راغلو نومونځ اداکړم. الله ﷻ فرمائی چه دالله ﷻ په وړاندې په ادب سره اودریږه. دوه دوه یویواو دیوې میاشتې په

فاصله باندې زما نصرت په رعب سره کړې شوې دې. (۱) داحديث سندا ضعيف دې او ډېر ممکن دی
چه پدې کښې دآيت ذکراو دا د جمع نه ياخان له کولوپه معنی کښې اخستې شوې وی. دا د راوی خپل
قول وی اوداسې بيان کړې شوې وی چه په ظاهره هغه د حديث الفاظ معلومېږی ځکه چه د حضورﷺ
خصوصيات په صحيح سند د احاديثو ډېر روايت دی اوپه يوکښې هم دا الفاظ نشته. والله اعلم.

**قوله تعالى:- إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم**

**رسول کريم ﷺ نذير وو ددې متعلق احاديث:-** خلق د هغه عذاب نه وېرونکې ووکوم چه د هغوی مخې ته دې
اوکوم چه دوی بالکل بې خبره اوبې فکره ناست دی.په صحيح بخاری شريف کښې دی نبی اکرمﷺ
يوځل په صفاغونډئی باندې اوختلو اودعربود دستورمطابق ياصباحاه ونيلوسره داوچت آواز چه کوم
علامت وو لکه چه څوك د يواهمې خبرې د پاره راغواړی.دعادت مطابق دې اوريدو سره ټول خلق
راجمع شو.حضورﷺ اوفرمائيل واورئی که زه تاسوته اووايم چه ستاسو دښمن په تاسو باندې حمله کول
غواړی اوعجيبه نه ده چه سحرياماښام په تاسو باندې حمله اوکړی نوتاسويه مارښتونې اوګڼرئی؟ ټولو
په يوځل جواب ورکړو او بې شکه مونږ به تا رښتونې اوګڼرو. حضورﷺ اوفرمائيل واورئی زه تاسو د
هغه عذاب نه
وېرول غواړم کوم چه ستاسو په وړاندې دې. دې اوريدو سره ابولهب ملعون ونيل ستا لاسونه دې مات
شی تا مونږ د دې دپاره راجمع کړې يو. په دې باندې سورت ﴿تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ﴾ (۲) الخ نازل شو (۳)
دا احاديث ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ (۴) په تفسيرکښې تيرشوی دی.

**د رسول کريم ﷺ اود امت مثال:-** مسند احمدکښې دی رسول اللهﷺ راووتلواومونږله نی تشريف راوړدرې
ځل نی آواز اوکړو. وئی فرمائيل خلقوزمااو خپل مثال پيژنئی؟هغوی ونيل الله ﷻ ته اوهغه رسول ﷺ
ته پوره علم دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل زما اوستاسو مثال د هغه قوم په شان دې په کوم باندې چه
دښمن حمله کونکې وو. هغوی خپل سړې اوليګلو چه لاړشه او دښمن اوګوره اود هغوی د تګ راتلك نه
مونږ خبرکړه. هغه چه کله اوکتل چه دښمن دهغوی طرف ته راروان دې او نيزدې رسيدلې دې نوهغه په
ټولوخپل قوم طرف ته راوړاندې شو چه هسې نه زماد خبرورکولونه وړاندې د دښمن حمله اونه شی. په
دې وجه هغه هم په لارکښې خپله کپړا خوزول شروع کړه چه هوښيار شئی دښمن راورسيدو.درې ځل
نی دا اوونيل(۵)يوبل حديث کښې دی چه زه اوقيامت په يوځائې راليګلې شوې يو.نيزدې وه چه قيامت
مانه وړاندې راغلې وو. (۶)

| قُلْ | مَا سَأَلْتُكُم | مِّنْ أَجْرٍ | فَهُوَ لَكُمْ |
|---|---|---|---|
| ورته اووايه | هغه چې ماغوښتلې وی ستاسو نه | څه اجر | پس هغه دستاسو وی |
| ته ورته اووايه چې که ما ستاسو نه څه معاوضه غوښتې وی نو هغه ستاسو شوه | | | |

(۱) ابن ابی حاتم.
(۲) ۱۱۱/اللهب:۱.
(۳) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة سبا باب ﴿ان هوالانذيرلکم بين يدی عذاب شديد﴾: ۴۸۰۱، صحيح مسلم:۲۰۸.
(۴) ۲۶/الشعراء:۲۱۴.
(۵) احمد:۲۴۸/۵وسنده حسن، مجمع الزوائد:۳۱۴/۱۰.
(۶) احمد:۲۴۸/۵وسنده حسن، مجمع الزوائد:۳۱۴/۱۰.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنۡ اَجۡرِیَ | اِلَّا | عَلَی اللّٰہِ ۚ | وَھُوَ | عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ | شَھِیۡدٌ۝ | قُلۡ |
| نه دي اجر زما | مگر | په الله باندې دي | او هغه | په هر څيز باندې | گواه دي | ورته اووايه |

زما اجر خو بس صرف د الله ﷻ سره دې | او هغه په هر څه باندې پوره خبر دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ رَبِّیۡ | یَقۡذِفُ | بِالۡحَقِّ ۚ | عَلَّامُ | الۡغُیُوۡبِ۝ |
| بيشکه رب زما | را اچوي په زړه کښې ماته | حق | هغه ښه عالم دې | په پټو حقيقتونو باندې |

ته ورته اووايه چې زما رب هميشه حق ته غلبه ورکوي | دغيبو په خبرو ډير ښه عالم د ې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلۡ | جَآءَ | الۡحَقُّ | وَمَا یُبۡدِئُ | الۡبَاطِلُ | وَمَا یُعِیۡدُ۝ |
| ورته اووايه | چې راغې | حق | اونه دنوی سره پيدا کولې شي څه څيز | باطل | اونه نې دوباره پيدا کولې شي |

ورته اووايه چې اوس حق راورسيدو | اوباطل نه وړاندې څه څيزوو | اونه اوس څه حيثيت لرې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلۡ | اِنۡ ضَلَلۡتُ | فَاِنَّمَآ | اَضِلُّ | عَلٰی نَفۡسِیۡ ۚ |
| ورته اووايه | که زه بې لارې شوې يم | نو پس بيشکه | وبال دبې لارې کيدو زما | په خان زما دې |

ورته اووايه چې که زه گمراه يم | نو د هغې وبال به صرف په ما باندې واقع کيږې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاِنِ اھۡتَدَیۡتُ | فَبِمَا | یُوۡحِیۡۤ | اِلَیَّ | رَبِّیۡ ؕ | اِنَّہٗ |
| او که زه په سمه لار يم | نو دا به وی | په سبب دهغې | چې وحی کوی | ماته | رب زما | بيشکه هغه |

اوکه زه په نيغه لار روان يم | نو دادهغه وحی په وجه روان يم | کومه چې ما ته زما رب کړې ده | هغه

| | |
|---|---|
| سَمِیۡعٌ | قَرِیۡبٌ۝ |
| هر څه اوريدونکې | نزدې دې |

هرڅۀ اورى ډير نزدې دې |

قوله تعالىٰ:- قُلۡ مَا سَاَلۡتُکُمۡ مِّنۡ اَجۡرٍ فَھُوَ لَکُمۡ ؕ

پيغمبر ﷺ د انسانيت محسن دې :حکم کولې شي چه مشرکانوته اووايه دا زه چه ستاسو خيرخواهى کوم تاسوته د دين احکام دررسوم، وعظ اونصيحت کوم په دې باندې زه تاسو نه هيڅ بدله نه غواړم. بدله خوبه هم الله ﷻ راکوی چه د ټولوڅيزنو دحقيقت نه خبرداردې. زمااوستاسو حالت هغه ته ښه معلوم دې بيانى چه دا اوفرمائيل ددې په شان آيت ﴿ يُلۡقِی الرُّوۡحَ مِنۡ اَمۡرِہٖ عَلٰی مَنۡ یَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِہٖ لِیُنۡذِرَ یَوۡمَ التَّلَاقِ﴾ (۱) الخ.يعنى الله ﷻ پخپل فرمان سره دحضرت جبرائيل ﷺ په ذريعه چه چاته نې خوښه وی وحی ليګی. هغه په حق سره فرښته نازلوی اوعلام الغيوب دې د هغه نه دآسمان اوزمکې هيڅ يوڅيزپټ نه دې. د الله ﷻ دطرف نه حق اومبارك شريك راغلې دې. باطل اوبه خراب اولنډې بوچې شي برباد به شى.لکه چه ارشاددې﴿بَلۡ نَقۡذِفُ بِالۡحَقِّ عَلَی الۡبَاطِلِ فَیَدۡمَغُہٗ فَاِذَا ھُوَ زَاھِقٌ ؕ وَلَکُمُ الۡوَیۡلُ مِمَّا تَصِفُوۡنَ۝﴾ (۲)مونږ په باطل باندې حق نازلولو سره باطل ټکړې کوو اوهغه خاورې کوو. رسول الله ﷺ دمکې دفتح په ورځ کله په بيت الله شريف کښې داخل شو نودهغه خاى بتان به نې د خپلې لينډې په لرگى سره راغورزول او په ژبه مبارکه

(۱) ۴۰/غافر:۱۵.

(۲) ۲۱/الانبياء:۱۸.

به نی ویـیل ﴿ وَقُلْ جَاۤءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ۚ اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا ﴾ (۱) حق راغلو باطل ختم شو اوهغه وو د ختمیدو دپاره (۲) دباطل او ناحق دباؤ تول بنکته شو. د بعضې مفسرینونه روایت دې چه دلته د باطل نه مراد ابلیس دې. یعنی هغه نه څوك اول پیداکړی نه به نی بیاراپیداکړې شی نه مړی ژوندی کولې شی اونه هغه ته بل داسې څه قدرت حاصل دې. خبره خودا هم صحیح ده ولې دلته دامطلب نه دې. والله اعلم.
بیاچه دااوفرمائیلې شو د دې مطلب دادې چه خیر ټول په ټول هم دالله ﷻ د طرف نه دې اودالله ﷻ په رالیږلې شوی وحی کښې دې. هم هغه سراسرحق بیان دې اوهدایت دې. گمراه کیدونکی پخپله ورانیږی اوهم خپل نقصان کوی. د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ نه چه کله د مفوضه د مسئله تپوس کړې شوې وو نوهغوی فرمائیلې وو دا زه په خپله رائې سره بیانوم. که صحیح وی نود الله ﷻ د طرف نه ده اوکه غلط نو زما اود شیطان د طرف نه دې اوالله تعالی اود هغه رسول ﷺ دې نه بری دې. (۳) هغه الله ﷻ دخپلو بندیگانو خبرې اوریدونکې دې اونیزدې دې اود آواز کونکی آواز هروخت اوری اوقبلوی. د صحیح په حدیث کښې دی رسول الله ﷺ یوځل خپلو صحابه کرامو ﷡ ته اوفرمائیل تاسو چرته کونړ یا غائب ته آواز نه کونی چاته چه تاسو آواز کوئی هغه اوریدونکې دې نیزدې دې او مجیب دې. (۴)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَوْ تَرٰۤی | اِذْ | فَزِعُوْا | فَلَا فَوْتَ | |
| او کاش چې اووینې ته | کله چې | اوویریږی دوئ | اونه به وی لاردبچ کیدو | |
| اوکه ته دوی هغه وخت اووینې چې دوئ به ویریدلې وی | | | نو خلاصیدې به نشی | |
| وَاُخِذُوْا | مِنْ مَّكَانٍ قَرِیْبٍ | | وَقَالُوْۤا اٰمَنَّا | |
| او نیولې کیږی به | دخائې نزدې نه | | اوا وبه وائی په هغه وخت کښې اچې ایمان راوړو مونږ | |
| اود نزدې نه به رانیولې شی | ..................... | | او دابه وائی چې (بس) مونږ په دې دین | |
| بِهٖ | وَاَنّٰی لَهُمُ | التَّنَاوُشُ | مِنْ مَّكَانٍ بَعِیْدٍ | |
| په دې باندې | او څرنگ به وی دوی لره | نیول | دخائې لرې نه | |
| ایمان راوړو | خواوس ددومره لرې ځائې نه د دوئ لاس چرته ورسیدې شی؟ | | | |
| وَقَدْ كَفَرُوْا | بِهٖ | مِنْ قَبْلُ | وَیَقْذِفُوْنَ | بِالْغَیْبِ |
| او کفر کړی وؤ دوئ | په دې سره | مخکښې ددې نه | اوویشتل به کول دوئ | په غیبو سره |
| حال دادې چې دوئ ترې د وړاندې نه انکار کولو | ............... | اودوئ د لرې نه بې لیدو | | |
| مِنْ مَّكَانٍ بَعِیْدٍ | وَحِیْلَ | بَیْنَهُمْ | وَبَیْنَ | مَا |
| دخائې لرې نه | او پرده به واچولې شی | په منځ ددوئ کښې | او په منځ | دهغه څیز کښې |
| خیالی غشی ویشتل | اوددوئ اوددوئ د خواهشاتو په مینځ کښې به یو دیوال اودرولې شی | | | |

۱) ۱۷/بنی اسرائیل:۸۱.
۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة بنی اسرائیل باب(وقل جاء الحق وزهق الباطل) ٤۷۲۰، صحیح مسلم:۱۷۸۱، ترمذی: ۳۱۳۸
۳) ابوداؤد کتاب النکاح باب فیمن تزوج ولم یسم لها صداقا حتی مات:۲۱۱٦وهو صحیح، نسائی:۳۳٦۰.
٤) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة خیبر:٤۲۰۲، صحیح مسلم:۲۷۰٤، احمد:٤/٤۰۲، ابوداؤد:۱۵۲۷

| مِّنۡ قَبۡلُؕ | بِأَشۡيَاعِهِمۡ | فُعِلَ | كَمَا | يَشۡتَهُونَ |
|---|---|---|---|---|
| مخکښې دده نه | دملګرو ددوی سره | شوی وو(داکار) | لکه څنګه چې | چې آرزوني کوی دوی |

لکه څنګه چې ددې نه وړاندې ددوی غوندې خلقو سره شوی وو | او هغوی هم

| مُّرِيبِۭ ۝ | فِي شَكّٖ | كَانُوا۟ | إِنَّهُمۡ |
|---|---|---|---|
| چې پریشانه کونکی وو | په داسې شک کښې | وو | بیشکه دوی |

ددوی پشان ښکاره شک کښې پراته وو

**قوله تعالی:-وَلَوۡ تَرَىٰٓ إِذۡ فَزِعُوا۟ فَلَا فَوۡتَ**

**دقیامت په ورځ به تیښتې پښیمانتیا او اقرار هیڅ نفع نه ورکوی:**-الله ﷻ فرمائی اې نبی ﷺ کاش چه تا د دې کافرانو دقیامت د ورځې هغه ویریدل لیدلې چه هرڅومره دعذابونونه خلاصیدل غواړی خود بچ کیدو به هیڅ یوصورت نه بیامومی.نه په تختیدوسره اونه په پټیدوسره نه د چا په حمایت سره اونه د چا په پناه سره بلکه ډیرزربه راونیولې شی. دیخوادقبرونونه راووتل اوبل خواراګیرکړې شو.اخواودریدل اودیخوا راګیر کړې شو.خوصحیح هم دادی چه دقیامت دورځې عذاب دې. بعضې وائی چه دبنوعباس د خلاقت په وخت کښې دمکې اومدینې په مینځ کښې دهغوی د لښکروپه زمکه کښې دورخښیدل مراد دې.ابن جریر رحمه الله دې بیانولوسره ددې په دلیل کښې یوحدیث نقل کړیدې چه بالکل موضوع اود خان نه جوړشوې دې.خو په تعجب باندې تعجب کیږی چه امام صاحب دا موضوع نه دې بیان کړې. د قیامت په ورځ به وائی چه مونږ ایمان قبلوو. په الله ﷻ باندې اود هغه په فرښتوباندې د هغه په کتابونو باندې اودهغه په رسولانوباندې ایمان راوړو. لکه چه بل آیت کښې دی ﴿وَلَوۡ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلۡمُجۡرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمۡ عِندَ رَبِّهِمۡ رَبَّنَآ أَبۡصَرۡنَا وَسَمِعۡنَا فَٱرۡجِعۡنَا نَعۡمَلۡ صَٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ ۝﴾[1] کاش چه تا لیدل ګناهګاران خلق دخپل رب په وړاندې سرونه ښکته کړې ولاړوی اوپه شرمندګئی سره وائی اې الله مونږ اولیدل مونږ واوریدل مونږ ته یقین راغلو.اوس ته مونږ بیادنیاته اولیګه نومونږ به نې دزړه نه اومنو.لکه څنګه چه د ډیر لرې ځیز داخستلوډپاره دلرې نه لاس راوړاندې کړی اوهغه د ده لاس له نه شی راتلې.همدغه شان حال د دې خلقو دې په آخرت کښې هغه کارکول غواړی کوم چه په دنیاکښې کول پکاروو نوپه آخرت کښې هغه ایمان راوړل بې کاره دی.اوس به نه دنیاته راواپس کولې شی اونه به د هغه وخت ژړا فریاد اوزاری توبه ویستل او فریادونه کول ایمان اواسلام هیڅ په کار نه راځی.ددې نه وړاندې په دنیاکښې خو منکر وئی نه موالله ﷻ منلو اونه مو په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړو نه د قیامت قائل شوئی اوهسې چه په نالیدلو اندازې سره نښې اولی.دغه شان دالله ﷻ خبرې په خپلو ګمانونوسره ردکولې.نبی ته نې کله کاهن ونیل کله شاعرکله جادوګراوکله مجنون او دا صرف دځان نه فضول خبرې وې. اوس په ایمان او د هغوی په مینځ کښې پرده راغلله. په توبه کښې اوپه هغوی کښې پرده راپریوتله. دنیادوی نه پاتې شوه اودوی د دنیا نه جداشو. ابن ابی حاتم په دې مقام کښې عجیبه او حیرانونکې اثر نقل کړې دې کوم چه مونږ پوره نقل کوو.

دحضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې په بنی اسرائیلوکښې یو فاتح سړې وو چاسره چه ډیرمال ووکله چه هغه وفات شو اودهغه څوئ د هغه وارث شو نوډیرپه خرابه طریقه باندې مال الوزولو.دهغه ترونو هغه ملامته کړو او پوهه نې کړو هغه په غصه کښې راغلوټول څیزونه نې خرڅ کړل او روپې راواخستې

[1] ۳۲/السجدة:۱۲.

عین ئجاجه له راغلو یومحل ئې جوړکړو اوهم دلته اوسیدلو.یوه ورځ په زوره سیلئې راغله په هغې
کښې یوه ډیره ښائسته او ښکلې ښځه هغه له راغله. هغه د دې نه تپوس اوکړو ته څوك ئې؟ هغې
وئیل بنی اسرائیلی یم. وئیل دامحل اومال ستا دې؟هغه وئیل او.تپوس ئې اوکړو ستا ښځه هم شته؟
هغه وئیل نه.هغې وئیل ته بیاد خپل ژوندخوندخنګه اوچتوې؟ اوس هغه تپوس اوکړو چه آیا ستا
خاوندشته؟هغې وئیل نه. وئیل بیا خو ما قبول کړه.هغې جواب ورکړو چه زه ددې ځایْ نه دیومیل په
فاصله باندې اوسیږم صباته دخان سره د ټولې ورځې خوراك څښاك راواخله ما کره راشه.که په لار
کښې څه عجائبات اووینې نو ویریږه مه. هغه قبوله کړه او بله ورځ ئې توښه واخسته روان شو.یومیل
لرې چه لاړونویوښکلې عالی شان محل ئې اولیدلو.ورټکولوسره یوښکلې خوان راغلو تپوس ئې اوکړو
ته څوك ئې؟ جواب ئې ورکړوبنواسرائیلی یم. وئیل څنګه راغلې ئې؟ وئیل د دې مکان مالکې رابللې
یم. وئیل په لار کښې دې څه خطرناك خیزونه اولیدل؟ جواب ئې ورکړو او که چرې ماته دا نه وو وئیلې
شوی چه ویریږه مه نوزه خو به د ویرې نه هلاك شوی ووم. زه لاړم یوې پلنې لار ته اورسیدم چه اومې
کتل یوسپینې څٔله کولاوکړې ناسته وه زه اوویریدلم اومنډه مې کړه چه اومې کتل هغه زما نه وړاندې
وړاندې ده.هغه ده اودهغې بچی دهغې په خیټه کښې غاپی.هغه خوان وئیل ته دانه شې موندلې. دا خو
تاته د آخری زمانې د یوخبرې مثال اوخودلې شو چه یوخوان به د بوډاګانویه مجلس کښې کینی او
هغوی سره به د خپل راز پټې خبرې کوی. چه زه نور وراوړاندې شوم نواومې کتل چه یوسل چیلئې دی
دکومو غلانځې چه د پنیونه ډکې دې یوبچې دې چه پنې څکی چه کله پنې ختم شی هغه ته پته اولګی
چه نور څه باقی پاتې نه شو نوهغه څٔله کولاوکړی لکه چه نور غواړی.دې خوان دربان وئیل ته داهم نه
شې حاصلولې.دامثال تاته اوخودلې شو دهغه بادشاهانو چه په آخره زمانه کښې به راځی د خلقو نه به
سره زراوسپین زرراکاړی تردې چه پوهه به شی چه اوس چاسره هیڅ هم پاتې نه شو نوبیا به هم هغوی
ظلم اوزیاتې کوی څٔلې به ئې کولاوکړې وی.هغه وئیل چه زه نور وړاندې شوم نومااوکتل یوه ونه ده
ډیره تکه شنه اوتازه ښکلې رنګ ښکلې شکل مادهغې یوښاخ راماتول غوښتلنودبلبونې نه آوازراغلو
اې دالله ﷺ بنده زما ښاخ مات کړه.بیاخود هرې یوې ونې نه هم داآواز راتلو دربان وئیل ته داهم نه شې
حاصلولې. په دې کښې اشاره ده چه په آخره زمانه کښې به د سرو کمې وی اود ښخوکثرت به وی. تر
دې چه د یوسړی د طرف نه به یوې ښځې ته پیغام لیګلې شی نولس شل ښځې به هغه خپل طرف ته
رابلی.هغه وئیل زه لږ نور وړاندې شوم نو ما اوکتل چه ډیودریاب په غاړه یوسړې ولاړدې اوخلقو له
اوبه راډکوی اوورکوی بیا پخپل مشك کښې اچوی. خوبه دې کښې یوڅاڅکې هم نه حصاریږی. دربان
وئیل ته په دې هم نه پوهیږې. په دې کښې مثال دې چه په آخر زمانه کښې به داسې علماء اووعظ
کونکې وی چه خلقوته به علم ښائی ښکلې خبرې به کوی ولې پخپله به عمل نه کوی بلکه پخپله به په
ګناهونوکښې اخته وی.بیاچه وړاندې شوم نو مایوه چیلئې اوکتله بعضې خلقوددې پښې نیولې وې
بعضو لکئې نیولې وه بعضو ښکرې نیولې وې بعضې په دې باندې سواره دی اوبعضې د دې پنې
لشی. هغه وئیل دامثال دې د دنیاکومو چه د دې پښې نیولې دی هغه دی چه د دنیانه پریوتل خو دا
ورته ملاونه شوه. کومو چه ښکرې نیولې دی داهغه دی چه خپله ګذاره کوی خو په سختئې سره. کومو
چه لکئې نیولې ده داهغه دی د چانه چه دنیا تختیدلې ده. سواره هغه دی چه دنیائې پخپله پریخودې
ده اوددنیا نه صحیح فائده اوچتونکی دی.کوم چه تا د چیلئې نه پنې راوبستونکې اولیدل دوی ته
خوشحالی ده دا دمبارکئې مستحق دی.هغه وئیل چه زه نور وړاندې شوم نواومې کتل چه یوسړې د
کوهی نه اوبه راوباسی اوبه یوحوض کښې وراچوی. د کوم حوض نه چه اوبه واپس کوهی ته ځی.هغه
وئیل داهغه سړې دې چه عمل کوی خو قبلیږی نه. هغه وئیل زه بیا وړاندې لاړم اومې کتل یوسړې
دانې په پټی کښې اوکرلې هم هغه وخت فصل تیارشو اوډیر ښکلې مزیدار غنم راوتل. وئیل داهغه

سرې دې چه د چانیکنی الله ﷻ قبلوی. هغه ونیل چه زه نور وراندې شوم نو یوسرې پرمخې پروت دې مانه نی ونیل روره زما لاس اونیسه ماکینوه. والله د کله نه چه زه پیداکړې شوې یم ناست نه یم. زما په لاس نیولوسره هغه اودریدو او تیز په منډه شو تردې چه زما د سترگونه پناه شو. دې دربان ونیل دا ستا عمر وو چه لاړو ختم شو. زه ملك الموت یم اود کومې بنځې سره چه ته ملاویدو له راغلې نی د هغې په شکل کښې هم زه ووم. د الله ﷻ په حکم سره تاله راغلې ووم چه ستا روح په دغه ځاۍ کښې قبض کړم اوبیا تا دوزخ ته اورسوم د دې باره کښې دا آیت﴿ وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ كَمَا فُعِلَ بِأَشْيَاعِهِم مِّن قَبْلُ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا فِي شَكٍّ مُّرِيبٍ ﴾[1] نازل شوې.دااثر غریب دې اوددې په صحت کښې هم نظردې.د آیت مطلب بنکاره دې د کافرانوچه کله مرگ راځی. دهغوی روح ددنیاد ژوند په مزوکښې اینختې وی. خو مرگ ورته مهلت نه ورکوی اود هغوی د خواهش او دهغوی په مینځ کښې دا حائل شی. لکه څنگه چه د دې مغرور اومفتون سړی حال شو چه لاړود بنځې په لټون کښې اوملاقات نی اوشو ملك الموت سره چه امید تی پوره شی د هغې نه وراندې نی روح لاړو. بیافرمائی چه د دوی نه وراندې امتونوسره هم داسې اوشو هغوی هم د مرگ په وخت کښې د ژونداوایمان آرزو کوله چه صرف یوبې کاره څیز وو. لکه چه ارشاد باری تعالی دې﴿ فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ ﴾[2] کله چه هغوی زمونږ عذابونه اوکتل نوونی ونیل مونږ په الله ﷻ چه واحد دې ایمان راوړو اوکوم کوم چه مونږ د الله ﷻ شریکان جوړ کړې وو دهغه ټولونه مونږ انکار کوو.خودهغه وخت ایمان هغوی ته هیڅ فائده ورنه کړه.دهغوی نه وراندې خلقوکښې هم د الله ﷻ هم دغه طریقه روانه وه. کافران د نفع نه محروم پاتې شو.دلته فرمائی چه په دنیاکښې خو په ټول ژندکښې په شك شبه اوترددکښې پاتې وو.پدې وجه دعذاب د لیدلونه پس ایمان راوړل بیکاره شو.دحضرت قتاده رحمه الله داقول دسروزرو په اوبود لیکلوقابل دې چه هغوی فرمائی د شکونواوشبهاتونه بچ شئی په دې باندې چه چاته مرگ راغلو هغه به د قیامت په ورځ په دې باندې اوچتولې شی.اوڅوك چه په یقین باندې مړشو نوهم په دې یقین باندې به راوچتولې شی.

والله سبحانه وتعالی الموفق للصواب.

د الله ﷻ په فضل اوکرم سره د هغه په لطف اورحم سره د سورت سباتفسیرختم شو.

**تقبل الله منا وقضی الله حاجاتنا.**

.................

| ایاتونه | | سورة فاطر مکیة وهي خمس واربعون آیة وخمس رکوعات | | رکوع گانې |
|---|---|---|---|---|
| ایاتونه | | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | | رکوعات |
| ۴۵ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ۵ |

| الْحَمْدُ | لِلَّهِ | فَاطِرِ | السَّمَاوَاتِ | وَالْأَرْضِ | جَاعِلِ |
|---|---|---|---|---|---|
| ټوله ثنا | خاص الله لره ده | چې پیدا کونکې دې | داسمانونو | او دزمکې | مقررونکې دې |

ټول تعریفونه صرف یو الله ﷻ دپاره دی| ...........چې د آسمانونو او زمکې پیدا کونکې دې

[1] ۳۴/سبا:۵۴.

[2] ۴۰/المؤمن:۸۴.

الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا اُولِيْٓ اَجْنِحَةٍ مَّثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ ؕ يَزِيْدُ

دفرښتو | پیغام رسونکي | خاوندانې | دوزرو | دوه | دریو | او څلورو دی | زیاتوالي کوی

او فرښتې ني خپلې پیغام رسونکي جوړ کړي اچې دوه دوه او درې درې اوڅلور څلور وزرې ني دی| د چا

فِي الْخَلْقِ مَا يَشَآءُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

په پیداوښت دمخلوق کښې | هغه چې خوښه ني شي | بیشکه الله | په هر څیز باندې | قادر دي |

په پیدائش کښې چې اوغواړي نور زیاتوی| ............... .. بیشکه الله ﷻ په هرڅه قادر دي

مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا ۚ

هغه چې پرانیزی | الله | دپاره دخلقو | درحمت نه | پس نه وی بندونکي هیڅوك | هغې لره |

الله ﷻ چې خلقو ته د رحمت (دروازه) پرانیزی | نو څوک ئې بندولې نشی | اوکوم

وَمَا يُمْسِكْ ۙ فَلَا مُرْسِلَ لَهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ ؕ

او هغه چې بند کړی | پس نه وی لیږونکي | هغه څیزلره هیڅوك | روستو دبندولو دهغه نه |

څیز چې هغه بند کړی نو څوک ئې د بندولو نه پس جاری کولې نشی

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝

اوهغه غالب دي | حکمت والا دي |

اوهغه غالب صاحب د حکمت دي |

قوله‌تعالی:- اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

**د الله ﷻ تعریف او د کمال قدرت بیان:-** ابن عباس ﷺ فرمائی د (فاطر) بالکل ټیك معنی ما د ټولونه اول دیو اعرابی د ژبې نه اوریدلې معلومه کړې ده. هغه یویل خپل ملګری اعرابی سره په جګړه راغلو. دیوکوهی باره کښې دهغوی اختلاف وو نوهغه اعرابی ونیل (انافطرتها) یعنی اول اول هم ماجوړکړې دې[1] نومعنی هم دا شود چه دشروع نه بې نمونې صرف په خپل قدرکامله سره الله ﷻ زمکه اوآسمان پیدا کړل. دضحاك رحمه الله نه روایت دې چه دفاطر معنی خالق ده[2] دخپل څان اوخپلو نبیانو په مینځ کښې هغه خپلې فرښتې قاصدان جوړکړې دی چه د وزرو والادی الوزی دې دپاره چه دیرزرد الله ﷻ پیغام د هغه رسولانوته اورسوی.په هغې کښې بعضې ددوو وزرو والا دی د بعضو درې درې وزرې دی دبعضو څلور څلور وزرې دی اود بعضو د دې نه هم زیاتې دی. حدیث شریف کښې دی رسول الله ﷺ د معراج په شپه جبرائیل ؑ اولیدلو نود هغه شپږ سوه وزرې وې اود هرو دوو وزرو په مینځ کښې د مشرق اومغرب هومره فاصله وه[3] دلته هم فرمائی رب تعالی چه څه غواړی پخپل مخلوق کښې زیاتوالې کوی.دچاد پاره چه غواړې ددې نه هم زیاتې وزرې ورکوی اوپه کائنات کښې چه څه غواړی آبادوی.ددې نه مرادښکلې آوازهم اخستې شوې دې.یوشاذ قراءت (فی‌الحلق) "ح" سره هم دې. والله اعلم.

---

[1]) الدرالمنثور:۳/۷.

[2]) الدرالمنثور:۳/۷.

[3]) صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب اذا قال احدکم آمین والملائکة فی‌السماء:۳۲۳۲-۳۲۳۳، صحیح مسلم:۱۷٤.

قوله تعالى:- مَا يَفْتَحِ اللّٰهُ لِلنَّاسِ مِنْ رَّحْمَةٍ

الله تعالى په هر څيز باندې غالب دې :- دالله ﷻ غوښتلې شوې هرڅه كيږي اوبغيرد هغه د غوښتنې نه هيڅ هم نه كيږي. كوم څه چه هغه وركړي دهغې بندونكې څوك نشته اوكوم چه بندكړي هغه څوك وركونكې نشته. د فرض مانځه دسلام نه پس د الله ﷻ رسول ﷺ به هميشه داكلمات لوستل ((لا اله الا الله وحده لا شريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطى لما منعت ولا ينفع ذا الجد منك الجد)) حضور ﷺ به دفضول خبرونه ډيرو سوالونونه اود مال د بربادئى نه منع كول. اوحضور ﷺ به جينكئى ژوندې خښول اود ميندو نافرمانى كول اوپخپله اخستلو اونوراخستلوته نه پريخودل نه هم منع كول[1] صحيح مسلم شريف كښې دى چه رسول الله ﷺ به د ركوع نه سر اوچتولو ((سمع الله لمن حمده)) ونيلوسره فرمائيل ((اللهم ربنا لك الحمد ملأ السماء والارض وملأ ما شئت من شئ بعد اللهم اهل الثنآء والمجد احق ما قال العبد وكلنا لك عبد اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطى لما منعت ولا ينفع ذا الجد منك الجد))[2] اوهم ددې آيت په شان آيت ﴿وَاِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ۚ وَاِنْ يَّمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ ([3]) نورهم ددې دمثال ډيرآياتونه دى. امام مالك رحمه الله فرمائى چه باران به وريدلونوحضرت ابوهريره رضي الله عنه به فرمائيل په مونږ باندې د فتح د ستورى نه باران راووروليې شو. بيابه ئى د دې آيت تلاوت كولو. (ابن ابى حاتم)

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَاَيُّهَا النَّاسُ | | اذْكُرُوْا | نِعْمَتَ اللّٰهِ |
| اے | خلقو | ياد كړئ | احسان دالله |
| ...........انې خلقو په تاسوچې دالله ﷻ كوم نعمتونه دى | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَيْكُمْ ؕ | هَلْ مِنْ خَالِقٍ | | غَيْرُ اللّٰهِ | يَرْزُقُكُمْ |
| چې دې په تاسو باندې | آيا شته څوك پيداكونكې | | بغير دالله نه | چې رزق دركوى تاسو ته |
| هغه ياد ساتئ | آيا دالله ﷻ نه بغير بل څوك خالق شته | | | چې تاسوته دآسمان |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنَ السَّمَآءِ | وَالْاَرْضِ ؕ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ ۡ | فَاَنّٰى |
| دآسمان نه | او دزمكې نه | نشته دې لائق دعبادت | مگر هم هغه دې | آخر دكوم خائې نه |
| اود زمكې نه روزى در رسوى ؟ | د هغه نه سوا بل څوك معبود نشته | | نو دا تاسو كوم طرفته اړولى | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تُؤْفَكُوْنَ ۝ | وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ | فَقَدْ كُذِّبَتْ | رُسُلٌ | مِّنْ قَبْلِكَ ؕ |
| تاسو دوكه خورئ | اوكه دوئ دروغ گنړى تالره | نو دروغ گنړلي شوى دى | رسولان | مخكښې ستانه |
| شئ | اوكه دوئ تادروغژن اوگنړى | نو تانه وړاندې هم پيغمبران دروغژن گنړلې شوى وو | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِلَى اللّٰهِ | تُرْجَعُ | الْاُمُوْرُ ۝ | يَاَيُّهَا النَّاسُ | اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ | | حَقٌّ |
| او خاص الله ته | واپس كيږى | ټول معاملات | اے خلقو | بيشكه وعده دالله | | حقه ده |
| اواخر ټولې مقدمې به الله ﷻ ته پيش كيږى | | | انې خلقو دالله ﷻ وعده بالكل ريښتونې ده | | | |

---

[1] ) صحيح بخارى كتاب الرقاق باب مايكره من قيل وقال:٦٤٧٣، صحيح مسلم:٥٩٣، احمد:٢٥٤/٤. (بخارى اومسلم).
[2] ) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب مايقول اذارفع راسه من الركوع: ٤٧٧، ابوداؤد:٨٤٧، ٥، احمد:٨٧/٣، ابن حبان: ١٩٠٥
[3] ) ٦/الانعام:١٧.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ | الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا | وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ | | بِاللّٰهِ |
| پس په دوكه كښې وانچوى تاسو | ژوند | ددنيا | اونه دوكه كړى تاسو | په باره دالله كښې |
| نوددنيا دا لړ ژوند مو خطا نه كړى | ...............او دالله په باره كښې مو دهوكه باز (شيطان) | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْغَرُوْرُ ۞ | إِنَّ الشَّيْطٰنَ | لَكُمْ | عَدُوٌّ | فَاتَّخِذُوْهُ | عَدُوًّا ط |
| هغه غټ دوكه باز | بيشكه چې شيطان | ستاسو دپاره | دشمن دې | نواونيسى هغه لره | دشمن |
| دوكه نكړى | بيشكه شيطان ستاسو ښكاره دښمن دې | نوتاسوئې هميشه په دشمنئ سره اونيسئ | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | يَدْعُوْا | حِزْبَهٗ لِيَكُوْنُوْا | مِنْ أَصْحٰبِ السَّعِيْرِ ۞ ط |
| بيشكه هغه رابلى | دِله خپله | دپاره ددې چې شى هغوئ | دملګرو ددوزخ نه |
| هغه خو (لګيادې) خپله ډله | .............. پدې مقصد راغواړى | چې دوزخيان شى | |

**قوله تعالى:- يَاأَيُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ط**

**دَ الله ﷻ په نعمتونوسره دَ الله ﷻ پيژندګلو:-** ددې خبرې دليل بيانولې شي چه د عبادتونولاتق صرف هم يودالله ﷻ ذات دې ځكه چه خالق اورازق هم هغه دې.بيادهغه نه بغيردبل چا عبادت كول سخته غلطى ده.په اصل كښې دهغه نه بغيرد عبادت لاتق څوك شته نه.بيا تاسو د دې ښكاره دليل او برهان نه پس څنګه دهوكه شوئى؟ اود نورو د عبادتونود پاره تيتيږئى. والله اعلم.

**قوله تعالى:- إِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوْهُ عَدُوًّا ط**

**شيطان دخلقو ښكاره دښمن دې :-** اې رسول الله ﷺ كه ستاد زمانې كافران ستا مخالفت كوى اوستاد خودلې شوى توحيداوپخپله ستاد رښتونې رسالت دروغ ګڼړى نو ته زره ٔمه خفه كوه. د وړاندينو نبيانو سره هم داسې شوى دى. د ټولوكارونو واپس كيدل هم د الله ﷻ طرف ته دى.هغه به ټولوته د هغوى د ټولوكارونو بدله وركړى اوبدله اوسزا به ټوله وى.خلقو دقيامت ورځ حق ده هغه يقينًا راتلونكې ده هغهٔ وعده كلكه ده.دهغه ځائ دنعمتونوبه بدله كښې ددې ځائ دافانى عيش اوعشرت كښې مه اينخلئى. د دنيا ظاهرى عيش د هغه ځائ د حقيقى خوشحالئى نه تاسو محروم نه كړى دغه شان د شيطان مكار نه هم هوښياراوسيږئى.دهغه په تلونكى راتلونكى جادوكښې اونه انخلئى.دهغه ددروغو اوچاپروسئى په خبروكښې رانه شئى اودالله ﷻ د رسول ﷺ حق كلام پرينږدئى دسورت لقمان په آخره كښې هم دا فرمائيلې دى.غروريعنى دهوكه باز نى دلته شيطان ته وئيلې دى([1])كله چه د مسلمانانواومنافقانو په مينځ كښې دقيامت په ورځ ديوال اودرولې شي په كوم كښې چه به دروازه وى دكوم په دننه حصه كښې چه به رحمت وى اوبهرحصه كښې عذاب هغه وخت به منافقان مؤمنانوته وائى چه آياموږ ستاسو ملګرى نه وو؟ دوى به جواب وركړى چه اوملګرى خو وى ولې تاسو خپل ځان په فتنه كښې واچولو اوسوچونه مو كول او شك شبه مو لرې نه كړه. د خواهشاتو په پوره كولو كښې ډوب وئى. تردې چه د الله ﷻ حكم راورسيدو اودهوكه باز شيطان تاسو په دهوكه كښې اوساتلئى. په دې آيت كښې هم شيطان ته غرور وئيلې شوې دې.

**قوله تعالى:- إِنَّمَا يَدْعُوْا حِزْبَهٗ**

**د شيطان ددهوكې بيان:-** بيانى شيطانى دښمنى بيان كړه چه هغه خو تاسو خبروى او ستاسو ددښمنئى

---

[1]) الطبرى: ٢٠/٤٣٨.

بوج نی په خپل سر اوچت کړي دي. بیا تاسو ولې د هغه په خبروکښې راځئي اودهغه په دهوکه کښې اینخلئي؟دهغه اود هغه د فوځ خوبالکل هم داخوښه ده چه هغه تاسوهم خپل ځان سره په راښکلو دوزخ ته یوسي الله ﷻ قوي دې عزیز دې اوزمونږ دعاده چه هغه دې مونږ د شیطان دښمنان کړي او د هغه د مکر دې مونږ په حفاظت کړي. اود خپل کتاب اورسول الله ﷺ د سنتو د تابعدارئي توفیق راکړي. هغه په هرڅیز قادردې اود دعاګانو قبلونکې دې. لکه څنګه چه دې آیت کښې د شیطان د دښمنئي بیان کړې شوې دې دغه شان دسورت کهف د آیت ﴿وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓىِٕكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ۭ كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ۭ اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ اَوْلِيَاۗءَ مِنْ دُوْنِيْ وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ۭ بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا﴾ [1] کښې هم د هغه د دښمنئي ذکر دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | لَهُمْ | عَذَابٌ شَدِيْدٌ ڛ | وَالَّذِيْنَ | |
| هغه کسان | چې کافران شوی دی | دهغوئ دپاره | عذاب سخت دې | او هغه کسان | |

هغه خلق کومو چې کفر اختیار کړو | د هغوئ دپاره سخت عذاب مقرر دې | اوچا چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | لَهُمْ | مَّغْفِرَةٌ | وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ۧ | |
| چې ایمان ئې راوړې وی | او عملونه کوی نیك | دهغوئ دپاره | ښښانه ده | او اجر لوئ دې | |

ایمان راوړې دې | اودنیکئ کارونه کوی | نو هغوئ دپاره ښښنه او ډیر لوئې اجرمقرر دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَفَمَنْ | زُيِّنَ | لَهٗ | سُوْۗءُ عَمَلِهٖ | فَرَاٰهُ | |
| آیا پس هغه څوك | چې ښائیسته کړې شوې وی | هغه ته | بدعمل دهغه | پس اووینی دې هغه | |

ایاچا ته چې خپل بدعمل ښائسته ښکاره شوې وی | او هغه پرې دنیک عمل ګمان کوی | نوهغه دنیکانو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَسَنًا ۭ | فَاِنَّ اللّٰهَ | يُضِلُّ | مَنْ يَّشَاۗءُ | وَيَهْدِيْ | مَنْ |
| نیك | پس بې شکه الله | ګمراهه کوی | هغه څوك چې غواړی | او نیغه لاربنائی | هغه چاته |

برابر کیدشی ، الله ﷻ چې څوک ګمراه کول غواړی ګمراه ئې کړی | اوچې چاته هدایت کول غواړی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَّشَاۗءُ ڮ | فَلَا تَذْهَبْ نَفْسُكَ | عَلَيْهِمْ | حَسَرٰتٍ ۭ | اِنَّ اللّٰهَ | |
| چې غواړی | پس نه دخی (نه دخفه کیږی) زړه ستا | په دوئ باندې | ادوچې دافسوس غم نه | بیشکه الله | |

نوهدایت ورته وکړی | نوته په دوئ باندې د غم کولو په وجه ځان مه هلاکوه | بیشکه الله ﷻ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلِيْمٌۢ | بِمَا | يَصْنَعُوْنَ ⑧ | | | |
| ښه عالم دې | په هغې | چې دوئ ئې کوی | | | |

ددوئ په کارونو ښه خبر دې

قوله تعالی:- اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ڛ

**دشیطان منونکو له عذاب او نه منونکو له جنت:-** پورته بیان تیرشوې ووچه د شیطانانود تابعدارانوځائ دوزخ دې ددې دپاره دلته بیان کولې شی چه دکافرانودپاره ډیرسخت عذاب دې.څکه چه دوی د شیطان تابعدار اود رحمن نافرمانه دی د مؤمنانونه چه کومه ګناه هم اوشی ډیره ممکن ده چه الله ﷻ به هغه

---

[1] ۱۸/الکهف: ۵۰.

معاف کړي اوکومې نیکئې چه دهغوی دی په هغې باندې به هغوی ته ډیردروند اجراوثواب ملاویږي. کافرانواوبدکارانوخپلې بدعملئې نیکئې ګنړلې ناسمت دی.نوپه داسې ګمراه خلقو باندې ستا څه وس دې؟هدایت اوګمراهي هم دالله ﷻ په لاس کښې ده.ته په دې باندې مه خفه کیږه دالله ﷻ مقدرات جاري شوي دی.دمالك الملوك مصلحت په دې کښې دالله ﷻ نه بغیربل څوك هم نه پیژني. په هدایت اوضلالت کښې هم د هغه حکمت دې هیڅ یوکار د هغه ربښتوني حکیم د حکمت نه خالي نه دې.دخلقو ټول کارونه هغه ته ښکاره دی.

حضورﷺ فرماني الله ﷻ خپل ټول مخلوق په تیاره کښې پیداکړې دی بیاني په هغوی باندې خپل نور واچولو. نو په چا چه هغه نور پریوتلو هغه دنیاته راغلو په نیغه لار روان شو اوچاته چه په دغه ورځ نور ملاونه شو هغه دنیاته په راتلوسره هم د هدایت نه فائده مندنه شو.پدې وجه زه وایم چه د الله ﷻ عزوجل د علم مطابق قلم روانیدو سره اوچ شو[1]

یوبل روایت کښې دی مونږله حضوراکرم ﷺ تشریف راوړو وئې فرمائیل دالله ﷻ د پاره ټول تعریفونه دی چه د ګمراهئې نه دې په هدایت راولی اوپه چاچه غواړي ګمراهي ګډه وډه کړي[2]داحدیث هم ډیر زیات غریب دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ | الَّذِيْٓ | اَرْسَلَ | الرِّيٰحَ |
| اوالله | هغه ذات دې | چې رالیږي | هواګانې |
| ددوئ په کارونو ښه خبر دې | ..................الله ﷻ هغه ذات دې چې بادونه رالیږي | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَتُثِيْرُ | سَحَابًا | فَسُقْنٰهُ | اِلٰى بَلَدٍ مَّيِّتٍ | فَاَحْيَيْنَا |
| پس پورته کوي | وريځې | پس ليږو مونږه هغه | زمکې مړې ته | پس ژوندئ کوؤ مونږه |
| نوهغه وريځې خورې کړي | نومونږ ئې مړې (اوچې) زمکې ته وراوليږو | انو زمکه پرې دمرګ | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِهِ الْاَرْضَ | بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ | كَذٰلِكَ | النُّشُوْرُ ۝ |
| په هغې سره زمکه | روسنو دمرګ دهغې نه | دارنګې به وي | راپورته کيدل ددوباره ژوند |
| نه پس بيا ژوندئ کړو | ..........هم دغسې به (ستاسو) دوباره ژوندون وي | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ كَانَ | يُرِيْدُ | الْعِزَّةَ | فَلِلّٰهِ | الْعِزَّةُ | جَمِيْعًا ؕ | اِلَيْهِ | يَصْعَدُ |
| هغه خوک | چې غواړي | عزت | پس الله لره دي | عزت | ټول | اخاص هغه ته | خيژي |
| خوک چې د عزت اراده لري | نو ټول عزت صرف د الله دې | هغه (الله) طرفه ته ښه خبره (کلمه طيبه) | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْكَلِمُ الطَّيِّبُ | وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ | يَرْفَعُهٗ ؕ | وَالَّذِيْنَ |
| کلمې (خبرې) پاکې | او عمل نيک | پورته کوي هغه | او هغه کسان |
| پورته خيژي | اوښه کارونه هغه (آسمان طرفته) پورته کوي | ..........اوڅوک چې | |

---

[1] حاکم: ٣٠/١ ح ٨٤ وسنده صحيح.
[2] ابن ابي حاتم.

يَمْكُرُوْنَ السَّيِّاٰتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۭ وَمَكْرُ اُولٰۗىِٕكَ

چې جوړوي سازشونه ناکاره | هغوئ لره دي | عذاب سخت | او سازش | ددې خلقو چې دي |

بد سازشونه جوړوي | هغوئ د پاره سخت عذاب مقرر دې | ................ اوددې خلقو ټول تدبيرونه

هُوَ يَبُوْرُ ۝ وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ

هغه | تباه کيدونکې دې | او الله | پيدا کړئ تاسو | دخاورې نه | بيا دنطفې نه |

ناکم دی| ................ اوالله ﷻ هغه ذات دې | چا چې تاسو د ښاورې نه ، بيا ئې د نطفې نه پيدا کړئ

ثُمَّ جَعَلَكُمْ اَزْوَاجًا ۭ وَمَا تَحْمِلُ مِنْ اُنْثٰى وَلَا تَضَعُ اِلَّا

بيا يې کړئ تاسو | جوړئ جوړئ | اونه قبلوی حمل | يوه ښځه | اونه ږدی حمل | مګر

بيا ئې جوړې جوړې اوګرځولئ | اوهيڅ يوه زنانه چه کله (په خپل رحم کښې) حمل بارکوی| يا ئې زيږون کيږي

بِعِلْمِهٖ ۭ وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُّعَمَّرٍ وَّلَا يُنْقَصُ

په علم دهغه کښې وی | او عمر نهٔ ملاويږی | يو عمر ملاويدونکې ته | اونهٔ څه کمې کيږی |

نو په ټولو هغه پوهيږی| اونه د چا عمر زياتيږی اونه د چا په عمر کښې کمې کيږی

مِنْ عُمُرِهٖٓ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ ۭ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ۝

دعمر دهغه نه | مګر (هغه) | په کتاب کښې وی | بيشکه | دا کار | په الله باندې| آسان دې |

داهر څه په لوح محفوظ کښې ليکلی موجود دی | اوداټول کارونه الله ﷻ ته ډير آسان دی

قوله تعالى:- وَاللّٰهُ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ

**د الله ﷻ د قدرتونو بيان:-** د مرګ نه پس په ژوندی کيدو باندې قرآن کريم په عام توګه د اوچې زمکې په شين کيدوباندې استدلال کړې شوی دې.لکه په سورت حج وغيره کښې دی دبنديګانود پاره په دې کښې پوره عبرت اودمړو په ژوندی کيدو باندې پوره دليل په دې کښې موجود دې.چه زمکه بالکل اوچه پرته ده هيڅ تازه والې پدې کښې نه ښکاری. خوأوريخې راوچتيږی اوبه راوريږی د هغې اوچوالې په تازه والی اومرګ په ژوندبدليږی.ياخويودکې هم په نظرنه راتلو يا په ميلونوباندې شينکې پيدا کيږی.دغه شان به د بنيادمواجزا په قبرونوکښې شيندلې پراته وی يويه دبل نه جداوی خودعرش د لاندې نه داوبوراوريدلوسره به ټول بدنونه دقبرونو نه راوټوکيږی.لکه دزمکې نه چه دانې راټوکيږی. په صحيح حديث کښې دی بنيادم ټول په ټول سخاکيږی خودملا هډوکې نه سخاکيږی هم د دې نه پيدا کړې شوې دې اوهم د دې نه به ترتيب ورکولې شی([1]) دلته نی هم نښه اوخودله ونی فرمائيل دغه شان د مرګ نه پس ژوند دې. د سورت حج په تفسيرکښې داحديث تيرشوې دې.

قوله تعالى:- كَذٰلِكَ النُّشُوْرُ ۝

**د بيا راپورته کيدو مثال:-** ابو رزين ﷺ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړوحضورﷺ الله ﷻ به دامړی څنګه راژوندی کوی؟ اودهغه په مخلوق کښې ددې خبرې څه دليل دې؟حضورﷺ اوفرمائيل اې ابوزرين! آيا ته دخپل کلی زمکې سره خواکې په داسې حال کښې نه نی تيرشوې چه هغه اوچه شاړه پرته وی بيا چه

[1]) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة عم يتساءلون:٤٩٣٥، صحيح مسلم:٢٩٥٥، ابوداؤد: ٤٧٤٣، ابن ماجه : ٤٢٦٦،احمد:٢/٣٢٢، ابن حبان:٣١٣٩.

داته پرې تيرېږي اوګورې چه هغه تکه شنه جوړه شوې ښکارى اوپه تازګنى سره خوزيږي.ابورزين ﷺ جواب ورکړو چه اوحضورﷺ دامې اکثر په کتلوکښې راغلى دى.حضورﷺ اوفرمائيل چه بس هم دغه شان به الله ﷻمړى هم راژوندى کوى(۱)کوم سړې چه په دنيااوآخرت کښې په عزت سره اوسيدل غواړى هغه له د الله ﷻ تابعدارى کول پکاردى هم هغه دامقصد پوره کونکې دې. د دنيااوآخرت مالك هم هغه دې. ټول عزتونه هم دهغه په قبضه کښې دى.

بل آيت کښې دى چه کوم خلق مؤمنان پرېږدى اودکافرانوسره دوستى کوى چه هغوى سره دې زمونږ عزت وى هغه دې د عزت نه لاس اووينځى. عزتونه خود الله ﷻ په قبضه کښې دى. يوبل ځائ کښې ارشاد ربانى دې﴿ وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (۲)يعنې عزتونه هم د الله ﷻ د پاره دى دهغه درسول ﷺ د پاره اودايماندارانود پاره خومنافقان بې علم دى.حضرت مجاهد رحمه الله فرمانى چه د بتانوپه عبادت کښې عزت نشته اود عزتونومالك خوهم الله ﷻ دى.(۳)دقتاده رحمه الله په قول د آيت مطلب دا دې چه د عزت غوښتونکى ته د الله ﷻ د احکامو پوره کولوکښې مشغول کيدل پکاردى. (۴) اوداهم وئيلې شوى دى چه که څوك په دې باندې ځان پوهه کول غواړى چه د چاد پاره عزت دې هغه دې پوهه شى ټول عزتونه هم د الله ﷻ دپاره دى. ذکر تلاوت دعا وغيره پاکې کلمې هم دهغه طرف ته خيژى.

قوله تعالى:-إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ

کلمه او نيک اعمال به برى او ګناهونه به لاندې راځى.-حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمانى مونږ چه څومره احاديث ستاسو په وړاندې بيانوو د ټولو تصديق د کتاب الله نه درکولې شو. واورئى مسلمانانو بنده چه کله ((سبحان الله وبحمده والحمدلله ولااله الا الله والله اکبر تبارك الله))لولى نودا کلمې فرښته د خپل وزرلاندې اوړى اوآسمان ته خيژى. د فرښتوکومې يوې ډلې سره چه تيريږى هغه ډله د دې کلماتو د ذکرکونکى دپاره د ابښنې دعاګانې غواړى.تردې چه رب العالمين ته وړاندې داکلمې پيش کولې شى بيا هغوى د ﴿ إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ ۚ وَالَّذِينَ يَمْكُرُونَ السَّيِّئَاتِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۖ وَمَكْرُ أُولَٰئِكَ هُوَ يَبُورُ ﴾ (۵) تلاوت اوکړو(۶).

حضرت کعب احبار رحمه الله فرمانى ((سبحان الله او لااله الا الله او الله اکبر)) دعرش نه ګيرچاپيره رو رو آواز راوباسى لکه دشاتود مچوبڼارې چه وى. دخپل ويونکى ذکردالله ﷻ په وړاندې کوى اونيك اعمال نى په خزانوکښې محفوظ کيږى.مسنداحمدکښې دى رسول الله ﷺ فرمانى کوم خلق چه دالله ﷻ جلال د هغه تسبيح دهغه حمد دهغه دلوئې اودهغه د وحدانيت ذکر کوى. دهغه دپاره داکلمې دعرش سره نيژدې دالله ﷻ په وړاندې ذکرکوى.آياتاسونه غواړئ چه څوك نه څوك دې ستاسو ذکردالله ﷻ په وړاندې کوى(۷)دحضرت ابن عباس ﷺ فرمان دې د پاکو کلمونه مراد د الله ﷻ ذکر دې اود نيك عمل نه مراد دفرائضواداکول دى. نوچه کوم سړې دالله ﷻ ذکراود فرائضوادائيګى کوى دهغه عمل اود هغه ذکرالله ﷻ ته پورته خيژى.اوچه څوك ذکر اوکړى او فريضه ادانه کړى دهغه کلام دهغه په عمل باندې واپس کولې شى(۸)دغه شان حضرت مجاهد رحمه الله فرمانى چه کلمه طيبه نيك عمل اوړى اودبزرګانونه

---

(۱) احمد:۱۱/۴اسنده حسن،.
(۲) ۶۳/المنافقون:۸.
(۳) الطبرى: ۴۴۳/۲۰.
(۴) الطبرى: ۲۰۴۴۴.
(۵) ۳۴سبا:۱۰.
(۶) حاکم:۴۲۵/۲وهوالرحسن،.
(۷) ابن ماجه کتاب الادب باب فضل التسبيح:۳۸۰۹وسنده حسن، احمد:۲۶۸/۴.
(۸) الطبرى: ۴۴۵/۲۰.

هم دغه نقل دی.

**قوله تعالی:- وَالَّذِيْنَ يَمْكُرُوْنَ السَّيِّاٰتِ**

اواياس بن معاويه قاضي رحمه الله فرمائی که نیك عمل نه وی نو کلمه طیبه پورته نه خیژی. حسن او قتاده رحمهما الله فرمائی قول بغیردعمل نه مردوددی. د بدو په شیش کښې هغه خلق ناست وی چه په مکر او ریاکارئي سره اعمال کوی[1] بلکه خلقوته دابنائی چه هغه دالله ﷻ فرمانبرداری کوی خوپه حقیقت کښې هغه د الله ﷻ په نیز د ټولونه زیات خراب دي .کومې نیکئی چه هغه کوی هغه صرف د ځان خودنې د پاره کوی. دوی د الله ﷻ ذکر ډیرکم کوی. عبدالرحمن رحمه الله فرمائی دې نه مراد مشرك دې. خوصحیح دادی چه داآیت عام دې مشرك په دې کښې په طریقه اولی داخل دې د هغوی دپاره خوسخت عذاب دې اودهغوی مکر فاسد اوباطل دې. دهغوی دروغ که نن نه وی نوصبابه راښکاره شی.عقل مندبه د هغوی دمکرنه خبرشی.کوم سرې چه څه کوی دهغې اثردهغه د مخ نه ښکاره کیږی.دهغه ژبه هم په هغه رنګ باندې رنګ کیږی.څنګه چه ئې باطن وی هم هغه شان دهغې عکس په ظاهرباندې هم ښکاری. د ریاکار بې ایمانی د ډیرې مودې پورې پټ نه شی پاتې کیدې. اوکه څوك بې وقوف د هغه په جال کښې راګیرشی هغه بله خبره ده. مؤمنان پوره عقل منداوهوښیار وی اوهغوی د دې دهوکه بازونه پوره خبر وی اود هغه عالم الغیب نه خو څه خبره پټیدې نه شی.

**قوله تعالی:- وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ**

**د انسان پیدائش دالله تعالی د کمال علم ذکر**:-الله ﷻ ستاسو پلار حضرت آدم عليه السلام دخاورې نه پیداکړو اود هغه نسل ئې دبې قیمته اوبونه جاری اوساتلو بیائی تاسوجوړه جوړه پیداکړئ.یعنی سړې اوښځه او داهم دهغه کرم لطف اواحسان دې چه د سړو د پاره ئې ښځې جوړې کړې چه دهغوی دسکون اوراحت سبب دې.دهرې یوې حمل دارې د حمل اود هرېچی دپیدا کیدوخبرهغه ته دی.بلکه دهرې پاڼې رارژیدو اوپه تیاره کښې دپرتې دانې نه اودهرپولوند اواوچ څیزنه هغه خبردې بلکه دهغه په کتاب کښې هغه لیکلې شوې دې. د دې آیت په شان ﴿ اَللّٰهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ؕ وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ ﴾ (۲) والا آیت هم دې اوهم هلته دهغې تفسیر هم تیرشوې دې.

**قوله تعالی:- وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهٖۤ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ ؕ**

**د نقص عمر او زیادت مطلب**:- دغه شان الله ﷻ عالم الغیب ته داهم علم دې چه کومې نطفې ته اوږد عمرملاویدونکې دې .داهم هغه سره لیکلی دی.﴿ وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهٖۤ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴾ کښې "ه" دضمیر مرجع جنس ته دې. عین نه دې څکه چه دعمر اوږدوالې په کتاب کښې دې.اودالله ﷻ په علم کښې دهغه دعمر نه کمې نه شی کیدې. د جنس طرف ته هم ضمیرراګرځی لکه چه په عربوکښې ونیلې شی (عندي ثوب ونصفه) یعنی ماسره یوه کپړا ده اودبلې کپړې نیمه ده. د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې د کوم سړی د پاره ما د اوږدوالی امر مقدرکړې دې هغه به دا هم دغسې پوره کوی. خوهغه اوږدعمر زما په کتاب کښې لیکلې شوې دې هم هغې ته به رسی.اوچاد پاره چه ماکم عمر مقررکړې دې د هغه ژوند به هم هغه عمر ته رسی.دا هرڅه د الله ﷻ په روښبی کتاب کښې لیکلې شوی موجود دی اورب ته دا ټول هرڅه آسان دی.(۳) دعمر د ناقص کیدو یومطلب داهم کیدې شی چه کومه نطفه د پوره کیدو نه وړاندې پریوځی هغه هم د الله ﷻ په علم کښې ده.بعضې انسانان سل سل کاله عمر لری

---

[1] الطبری: ۲۰/٤٤٧.
[2] ۱۳/الرعد:۸.
[3] الطبر: ۲۰/٤٤٧.

او بعضې پیداکیدو سره مري. دشپیتو کالونه کم عمروالا هم دناقص عمروالا دې. داهم ونیلې شوی دی چه دموریه خیټه کښې د عمر اوږدوالې یاکم والې لیکلې کیږي. د ټول مخلوق یوشان عمر نه وی څوک داوږد عمروالا اوڅوك دکم عمر والا وی. دا ټول الله ﷻ سره لیکلې شوی دی اوهم د هغې په شان په ظهور کښې راځي. بعضې وائي چه د ې معنی داده چه کوم اجل لیکلې کیږی اوددې نه کوم تیریږی ټول دالله ﷻ په علم کښې دی اوهم دهغه په کتاب کښې لیکلې شوی دی. بخاری اومسلم وغیره کښې دی حضوراکرم ﷺ فرمائي چه څوك غواړی دهغه رزق اوعمردې زیات شي نوهغه دې صله رحمي کوی. (۱) ابن ابی حاتم کښې دی حضوراکرم ﷺ فرمائي دچا اجل راتلوسره هغه ته مهلت نه ملاویږی. دعمر د زیاتوالی نه مراد د هغه نیك اولاد کیدل دی. د کومودعاګانې چه د هغه د مرګ نه پس د هغه قبرته هم رسي. هم دادعمر زیاتوالې دې. دا الله ﷻ ته آسان دی اود دې علم هغه سره دې. د هغه علم ټول مخلوق راګیر کړې دې. هغه هریوخیز پیژنی دهغه نه هیڅ هم پټ نه دی.

| |
|---|
| وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرٰنِ ۖ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَآئِغٌ |
| اونهٔ دی برابر \| دواړه دریابونه \| دا خوږ دې \| تنده ماتونکې دې \| تیریدونکې دی (مزې دار دې) |
| اودوه قسمه دریابونه یو قسم خوږ ،تنده ماتونکې دې\| او څکل ئې مزیدار دی |
| شَرَابُهٗ وَهٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ۖ وَمِنْ كُلٍّ تَأْكُلُوْنَ لَحْمًا |
| اوبهٔ ددې \| اودا (بل) \| مالګین دې \| حلق غوڅونکې دې \| او دهر یونه \| خورئ تاسو \| غوښې \| |
| او(دویم قسم) مالګین ، تریخ دی \| او د هریو نه تاسو تازه غوښه (دکبانو وغیره) خورئی |
| طَرِيًّا وَّتَسْتَخْرِجُوْنَ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا ۚ وَتَرَى الْفُلْكَ |
| تازه \| او رااوباسئ تر تاسو \| دښائیست سامان \| چې تاسو اغوندئ هغه \| اووینې ته کشتئ \| |
| اوکالی (موتی وغیره) راوباسی\| چې تاسوئې اغوندئ\| اوته په کښې بیړئ (اوجهازونه) |
| فِيْهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ |
| په دې کښې \| څیرونکې اوبو لره \| دپاره ددې چې تاسو تلاش کړئ \| دفضل دهغه نه \| |
| وینې\| چې داوبو سینه شلوی\| او وړاندې ځی\| دا دې دپاره چې تاسو دهغه پیدا کړې روزی اولټوئ |
| وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ⑫ |
| او دپاره ددې چې تاسو \| شکر اوباسئ \| |
| اود ا ددې دپاره چې تاسو دهغه شکر اوباسئ |

**قوله تعالی:- وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرٰنِ ۖ**
**د الله ﷻ دعجیبه قدرت بیان:-** دمختلفوڅیزونود پیدائش بیانولونه پس ئې خپل زبردست قدرت ثابت کړو. دوه قسمه دریابونه ئې پیداکړل په کوموکښې چه لونې لونې کشتئې اوجهازونه روان دی. اود دواړوقسم دریابونونه قسم قسم کبان تاسو راوباسئ اوتازه غوښه خورئ. بیاد دې نه کالي راوباسئ یعنی لؤلؤ او مرجان. داکشتئ برابر اوبه پریکوی د هواګانو مقابله کوی روانې دی دې د پاره چه تاسو

---
(۱) صحیح بخاری کتاب الادب باب من یبسط له فی الرزق الصلة الرحم: ۵۹۸٦، صحیح مسلم: ۲۵۵۷، ابوداؤد: ۱٦۹۳.

دهغه فضل اولټوئي.تجارتي سفرونه په دې باندې پوره کړئ.تاسو دسمندرونونه اود دریابونونه او کشتونه نفع حاصلوئ.چرته چه تلل غوارئ نو رسئ.ددې قدرت مالك الله ﷻ د زمکې اوآسمان خیزونه ستاسو دپاره مسخرکړي دي اوداصرف هم دهغه فضل اوکرم دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يُولِجُ | الَّيْلَ | فِي النَّهَارِ | وَيُولِجُ | النَّهَارَ | |
| ننباسي هغه | شپه | په ورځ کښې | او ننباسي | ورځ | |
| هغه شپه په ورځ کښې او ورځ په شپه کښې | | | | | |
| فِي الَّيْلِ | وَسَخَّرَ | الشَّمْسَ | وَالْقَمَرَ | كُلٌّ يَّجْرِيْ | لِاَجَلٍ |
| په شپه کښې | او تابع کړی دی هغه | نمر | اوسپوږمۍ | هر يو چليږي | ديوې نيتې |
| داخلوي او نمر اوسپوږمۍ ئې په کار لګولې دي هر يو خپلې مقررې نيتې پورې روان دی | | | | | |
| مُّسَمًّى | ذٰلِكُمُ اللّٰهُ | رَبُّكُمْ | لَهُ الْمُلْكُ | وَالَّذِيْنَ | |
| مقررې پورې | هم دغه الله | رب ستاسو دې | هغه لره بادشاهي ده | او هغه کسان | |
| هم دغه الله ﷻ ستاسورب دې بادشاهي هم د هغه ده ..................... اودهغه نه بغير چې تاسو | | | | | |
| تَدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِهٖ | مَا يَمْلِكُوْنَ | مِنْ قِطْمِيْرٍ | | |
| چې رابلئ ئې تاسو | بې دالله نه | نه دي مالکان هغوئ | دپردې دزړې دخرما | | |
| څوک رابلئ نوهغوئ د کهجورې د هډوکي دپاسه پروت نرم پوستکي هم اختيار نه لري | | | | | |
| اِنْ تَدْعُوْهُمْ | لَا يَسْمَعُوْا | دُعَآءَكُمْ | وَلَوْ سَمِعُوْا | مَا اسْتَجَابُوْا | |
| که تاسو رااوبلئ هغوئ | نو نه اوري هغوئ | بلنه ستاسو | او که واني وري | نو جواب نشي درکولې | |
| که تاسو ئې اوبلئ نو هغوئ ستاسو بلنه هم نه آوري او(فرض کړه)که دوئ ئې واوري نو دوئ تاسوته | | | | | |
| لَكُمْ | وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ | يَكْفُرُوْنَ | بِشِرْكِكُمْ | وَلَا يُنَبِّئُكَ | |
| تاسو لره | او په ورځ دقيامت به | انکار کوي هغوئ | دشرك ستاسو نه | اونشي خبر درکولې تاله هيڅوك | |
| جواب نشي درکولې اود قيامت په ورځ به ستاسو د شرك نه انکار اوکړي اود سم خبردار(الله ﷻ) | | | | | |
| مِثْلُ | خَبِيْرٍ | | | | |
| په مثل | دخبردار (الله) | | | | |
| پشان بل هيڅوك خبر نکړې شي | | | | | |

**قوله تعالىٰ:- يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ**

**دورځې اوشپې پيداکول د الله ﷻ دقدرت نښې دي:-** الله ﷻ د خپل کامل قدرت بيان کوي چه هغه شپه د تيارې والا او ورځ د رڼراوالا جوړکړې دی. کله شپې لونی اوکله ورځې لونی.کله دواړه يو شان کله يخني ده اوکله ګرمي ده. هم هغه نمر سپوږمئی ولاړ او ګرځيدونکی ستوري تابعدار کړی دی. په مقرر مقدار باندې د الله ﷻ د طرف نه په مقرر شوی چال باندې روان دی. د پوره قدرتونووالا اود کامل علم والا الله ﷻ دا نظام قايم ساتلې دې کوم چه يوشان روان دې اود مقرر وخته پورې يعنی د قيامته پورې

به هم داسې روان وی.کوم الله ﷻ چه داهرڅه کړی دی په اصل کښې هم هغه الله ﷻ د عبادت لائق دې او هم هغه د ټولو پالونکې دې. د هغه په شان څوك هم د عبادت لائق نشته.

**قوله تعالى:-** وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ

**دالله ﷻ نه سوا هرڅوک عاجز او بې خبر دی:-** کوم کوم بتانو ته چه دالله ﷻ نه بغير کوم کوم خلق آوازونه کوی که هغه فرښتې ولې نه وی اود الله ﷻ سره لوئی درجې لرونکی ولې نه وی خو ټول په ټول د هغه په مخکې مجبوراوبالکل بې وسه دی. دکهجورې دهډوکی دپاسه دنرئی جلئی غوندې څیز هم دوی ته اختيار نشته. د آسمان اوزمکې دسپك نه دسپك څيز هم هغوی مالكان نه دی. کوم چه تاسو د الله ﷻ نه بغير رابلئی هغوی ستاسو آواز اوری هم نه. ستاسو بتان وغیره بې ساه څيزونه دغوږونووالا نه دی چه واوری. بې ساه څيزونوهم چرته د چا اوريدلی دی؟ اوفرض کړه ستاسو آواز اوری هم نوچه دهغوی په قبضه کښې څه څيز شته نه نوهغوی ستاسو حاجت نه شی پوره کولې. د قيامت په ورځ به دا ستاسو د شرك نه انكاری شی. تاسو نه به ويزاره ښکاری.

لکه چه فرمائی ﴿وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗۤ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ۝﴾ (١) يعنی د دوی نه به زيات ګمراه څوك وی چه دالله ﷻ نه بغيرداسې چا ته چغې وهی چه د قيامته پورې به د هغوی وينا قبوله نه کړې شی.بلکه دهغوی ددعانه هغوی بې خبره اوغافل دی اوبه ميدانِ محشر کښې به هغوی د دوی دښمنان شی اود هغوی د عبادت نه به منكر شی. بل آيت کښې دی ﴿ وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لِّيَكُوْنُوْا لَهُمْ عِزًّا۝﴾ (٢) يعنی د الله ﷻ نه بغير ئی نورمعبودان جوړکړی دی دې د پاره چه هغوی د دوی د پاره دعزت ذريعه جوړشی.خوداسې کيدونکی نه دی بلکه هغوی به د دوی دعبادت نه هم انکاری شی اودهغوی مخالف اودښمنان به شی. ښه ده اوښايه د الله ﷻ په شان رښتياخبرې څوك خودلې شی؟ هغه چه څه فرمائيلی دی هغه به خامخا کيږی. کوم څه چه کيدونکی دی هغې نه الله ﷻ پوره خبردې. د هغه په شان خبر بل څوك نه شی ورکولې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يٰۤاَيُّهَا | النَّاسُ | اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ | اِلَى اللّٰهِ ۚ | وَاللّٰهُ | |
| اے | خلقو | تاسو محتاج يئ | الله ته | او الله چې دې | |
| ائې خلقو!تاسو ټول دالله ﷻ محتاج يئ / او الله ﷻ | | | | | |
| هُوَ الْغَنِيُّ | الْحَمِيْدُ ۝ | اِنْ يَّشَاْ | يُذْهِبْكُمْ | وَيَاْتِ | |
| هم هغه بې حاجته دې | ستائيلې شوې دې | كه هغه اوغواړي | نو لرې به كړي تاسو | او رابه ولی | |
| بې پرواه او ستائيلې شوې دې / ......... .........كه هغه اوغواړی نو تاسوبه ختم کړی او نور نوې | | | | | |
| بِخَلْقٍ | جَدِيْدٍ ۝ ۚ | وَمَا ذٰلِكَ | عَلَى اللّٰهِ | بِعَزِيْزٍ ۝ | وَلَا تَزِرُ |
| مخلوق | نوې | اونه دې دا كار | په الله باندې | څه ګران | اونه به اوچتوی |
| مخلوق به پيدا کړی / اودا كار الله ﷻ ته هيڅ ګران نه دې / ...............او هيڅوک به د بل چا | | | | | |
| وَازِرَةٌ | وِّزْرَ | اُخْرٰى ۗ | وَاِنْ تَدْعُ | مُثْقَلَةٌ | اِلٰى حِمْلِهَا |
| يو بوج اوچتونكې | بوج | دبل كس | اوكه راوبلي | يو بوج والا سړى | اوچتولو دبوج خپل ته |
| بار اوچت نکړې شی / او (فرض کړه) که باراوړونکې دخپل بار اوچتولو دپاره څوک راوبلی / نو يو پوټې | | | | | |

(١) ٤٦/الاحقاف:٥.
(٢) ١٩/مريم:٨١.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا يُحْمَلْ | مِنْهُ | شَيْءٌ | وَّلَوْ كَانَ | ذَا قُرْبٰى ؕ | اِنَّمَا |
| نوا وچت به نهٔ کړې شي | دهغه (دبار) نه | هيڅ څيز | اګر که وي هغه | نزدې خپلوان | بيشکه |
| به ترې هم اوچت نکړې شی \| اګر که نزدې خپلوان ئې وی \| (اني پيغمبره ﷺ !) ته خو بس | | | | | |
| تُنْذِرُ | الَّذِيْنَ | يَخْشَوْنَ | رَبَّهُمْ | بِالْغَيْبِ | وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ؕ |
| تهٔ خبردارولې شی | هغه خلق | چې يريږي هغوئ | درب خپل نه | بې ليدو | او قائموی مونځ |
| داسې خلق ويرولې شې \| چې دخپل رب نه بې ليدو ويريږي \| او مونځونه پابندی سره کوی | | | | | |
| وَمَنْ تَزَكّٰى | فَاِنَّمَا | يَتَزَكّٰى | لِنَفْسِهٖ ؕ | وَاِلَى اللّٰهِ | |
| او هغه چاچې خان پاک کړو | پس بې شکه | هغه خان پاکوی | دپاره دخان خپل | او خاص الله ته | |
| او څوک چې پاک شو نو دخپل خان دپاره پاک شو \| او الله ﷻ ته دهر څيز واپس کيدل دی | | | | | |
| الْمَصِيْرُ ۝ | | | | | |
| واپس تلل دی دټولو | | | | | |

**قوله تعالی:- اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ اِلَى اللّٰهِ ۚ**

**الله تعالی ټول فناکولوباندې قادردې :-** الله ﷻ د ټول مخلوق نه بې نيازه دې اوټول مخلوق د هغه محتاج دې هغه غنی دې او ټول فقيران دی. هغه بې پرواه دې اوټول دهغه حاجت منددی. دهغه په وړاندې ټول خوار دی هغه عزيز دې. دهيڅ قسم حرکت او سکون باندې څوک قادرنه دی. دساه اخستو پورې څوک وس نه لری.مخلوق بالکل بې وسه دې. غنی بې پرواه اوبې نيازه صرف هم الله ﷻ دې په ټولوخبرو باندې قادر هم هغه دې. هغه چه څه کوی په هغې کښې د تعريف قابل دې. دهغه يوکار هم د حکمت او تعريف نه خالی نه دې. په خپل قول کښې خپل فعل کښې په خپل شرع او تقدير مقررولو کښې. غرض دهرقسم هغه بزرګ او لائق دحمد اوثنادې.اې خلقو دالله ﷻ قدرت شته چه هغه تاسو ټول غرق او برباد کړې اوستاسو په ځائ نورخلق راولی. په رب باندې داکار هيڅ ګران نه دې. که د قيامت په ورځ نی څوک په بل چاباندې بارکول کوی نوداخوښه به هم د هغوی پوره نه شی.

هيڅ څوک به ملاونه شي چه دهغوی بوج اخوا کړی. خپل خپلوان به هم ترې مخ واړوی شابه کړی که هغه مور پلار اواولاد ولې نه وی. هرسړې به په خپل حال باندې مشغول وی هريوبه په خپل غم کښې اخته وی.حضرت عکرمه رحمہ اللہ فرمائی ګاونډی به ګاونډی پسې اولګی. الله ﷻ ته به وائی چه د ده نه خو تپوس اوکړه ده زما نه خپله دروازه ولې بنده کړې وه. کافران به مؤمنانوپسې اولګی اوکوم احسان چه هغه په دنیاکښې ورسره کړې وو هغه به وريادکړی وائی به چه نن زه ستا محتاج يم. مؤمن به هم د هغه سفارش کوی اوکيدې شی چه دهغه عذاب لږشان کم شی خود دوزخ نه خلاصيدل محال دی. پلار به خپلو خامنوته خپل احسان وريادکړی اووائی به چه د اوری د دانې هومره نن ماله د خپلې نيکئی نه څه راکړه. هغه به وائی پلاره ته خو څيز ډير کم غواړې خودا نن چه کومه ويره تاته ده هم هغه ماته هم ده زه خو هيڅ هم نه شم درکولې. بيابه ښځې له ورشی اوورته به وائی ماتاسره په دنياکښې څنګه سلوک کړې دې؟ هغه به وائی ډير ښه. دې به وائی چه نن زه ستا محتاج يم ماته يوه نيکی راکړه چه د عذابونونه خلاص شم. جواب به ورته ملاوشی چه سوال خودې ډير کم دې خوچه په کومه ويره کښې نن ته نی هم هغه ويره ماته هم ده. نن خوزه هيڅ سلوک نه شم کولې.دقرآن کريم په بل آيت کښې دی ﴿لا

يَجْزِيْ وَالِدٌ عَنْ وَّلَدِهٖ ۡ وَلَا مَوْلُوْدٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَّالِدِهٖ شَيْـًٔا ؕ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۥ وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ﴾ ([1]) يعني نن به نه پلارد خوئ په كار راشي اونه به خوئ د پلارپه كار راشي.يوبل ارشاد دي ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ اَخِيْهِ﴾ ([2])نن به انسان دخپل رور نه مور نه پلارنه ښخي نه اولاد نه تختي. هر سړي به په خپل حال كښې مست او بې خوده وي. هريوبه د بل نه غافل وي. ستا د وعظ اونصيحت نه هغه خلق فائده اخستې شي چه عقل مندواودفراست خاوندان وي د خپل رب نه په قدم قدم باندې ويرېږي دالله ﷻ اطاعت كوي مونځونه پابندئی سره داكونكي وي. نيك عملونه به پخپله تاسو ته فائده دركړي.كوم پاكوالې چه تاسو كوئی دهغې نفع به هم تاسو ته دررسي. آخر الله ﷻ له تلل دی د هغه مخې ته پیش كيدل دی. حساب كتاب به دهغه په وړاندې كيږي. دعملونوبدله هغه پخپله وركونكې دې.

وَمَا يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ۙ وَلَا الظُّلُمٰتُ

اونۀ برابريږی ‖ ړوند ‖ او نظر والا ‖ اونۀ تياري

او ړوند اوليدونكې (دواړه) برابر يدې نشی ‖ اونه تياري

وَلَا النُّوْرُ ۙ وَلَا الظِّلُّ وَلَا الْحَرُوْرُ ۚ وَمَا يَسْتَوِي الْاَحْيَآءُ

اونۀ رڼرا ‖ اونۀ سورې ‖ اونۀ دنمر گرمی ‖ اونۀ برابريږی ‖ ژوندی

اورڼرا يوشان كيديشی ‖ اونه يخ سيورئ اونه دنمرتو يو شان كيديشي ‖ اونه ژوندی

وَلَا الْاَمْوَاتُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُسْمِعُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَمَآ اَنْتَ

اونۀ مړی ‖ بيشكه الله ‖ اوروی ‖ هغه چاته ‖ چې خوښه ئې شی ‖ اونۀ ئې تۀ

او مړی برابريدې شی ‖ الله ﷻ چې چا ته اوغواړی نو خبره ورته اوروی ‖ اوته په قبرونو

بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُوْرِ اِنْ اَنْتَ اِلَّا نَذِيْرٌ

اورونكې ‖ هغه چاته ‖ چې په قبرونو كښې دی ‖ نۀ ئې تۀ ‖ مگر ‖ يرونكې

كښې پرتو (مړو) ته خپل اواز اوورلې نشې ‖ ............ته خوبس صرف ويرونكې ئې

اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ؕ وَاِنْ مِّنْ اُمَّةٍ

بيشكه چې ليږلې ئې مونږ تۀ ‖ دحق سره ‖ زيرې وركونكې ‖ اويرونكې ‖ اونۀ وۀ ‖ يوامت

مونږ ته په دې سره پيغمبر راليږلې يې ‖ اوداسې يو امت نشته ‖ چې هغې ته (دالله ﷻ دنافرمانئ) نه

اِلَّا خَلَا فِيْهَا نَذِيْرٌ وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَ

مگر ‖ تير شوې دې ‖ په هغې كښې ‖ خبرداروونكې ‖ او كه دوئ دروغ اوگڼړی تا ‖ نو دروغ گڼړلی دی

ويرونكې نه وی راغلې ‖ اوكه چرې داخلق تا دروغژن كوی ‖ نو كوم خلق چې د دوی نه

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

هغه كسانو ‖ چې مخكښې ددوئ نه وۀ ‖ راغلی وۀ هغوئ ته ‖ رسولان دهغوئ ‖ دواضحه دليلونو سره

وړاندې تير شوی دی ‖ هغه هم دغه شان دروغژن گڼړلي شوی وو ‖ هغوئ ته رسولانو .

[1] ۳۱/لقمان:۳۳.
[2] ۸۰/عبس:۳٤.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَبِالزُّبُرِ | وَبِالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ۝ | ثُمَّ اَخَذْتُ | الَّذِيْنَ |
| او دصحيفو سره \| او دكتاب | روښانه سره | بيا رااونيول ما | هغه كسان |
| ښكاره معجزې ، صحيفې اوروښانه كتابونه راوړي وو \| بيا كومو خلقو چې انكار اوكړو | | | |
| كَفَرُوْا | فَكَيْفَ كَانَ | نَكِيْرِ۝ | |
| چې وې نه منل هغه \| پس څرنګې وه \| سزا زما \| | | | |
| نوهغوئ مې راونيول \| نو اوګوره چې زما عذاب څنګه وو \| | | | |

**قوله تعالى:- وَمَا يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ۝**

**ړوندى اومره برابرنه دى:**-ارشادكولې شى چه مؤمن اوكافربرابرنه دى څنګه چه بينااونابيناتياره او رڼرا سورې اوګرمئى ړوندې اومې برابر نه دى. لكه څنګه چه په دې څيزونوكښې دزمكې اوآسمان فرق دې دغه شان په ايمانداراو بې ايمانه كښې هم ډيرزيات فرق دې.مؤمن په مثال دبينا رڼرا سورې او ړوندى دې په خلاف د كافر چه د ړوند تيارې اوګرمئى دې. لكه چه فرمائى ﴿اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنٰهُ وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝﴾(۱) يعنى چه كوم مړه وو هغه مونږ بياراژوندى كړل اوهغوى ته مو نور وركړوبه كوم سره چه په خلقو كښې ګرځى. داسې سړې او كوم چه په تياروكښې راګيرشوى وى د كوم نه چه وتلې هم نه شي. دا دواړه برابركيدې شى؟ يوبل آيت كښې دى ﴿مَثَلُ الْفَرِيْقَيْنِ كَالْاَعْمٰى وَالْاَصَمِّ وَالْبَصِيْرِ وَالسَّمِيْعِ ؕ هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ۝﴾(۲)يعنى ددواړوډلومثال مؤمن دستركوولا غوږونو والا رڼراوالا اونوروالا دې.بيا په نيغه لاردې چه په صحيح طريقه به د سورو او نهرونووالا جنت ته رسى اوددې په خلاف به كافرړوندكونړاو په تياروكښې راګير شوى وى دكومې نه چه وتلې نه شى اوتيك به دوزخ ته رسى چه د ګرم تند تيزګرمئى والا داُور مخزن دې.الله ﷻ چه چاله غوارې هغه ته ئې واوروى يعنى داسې د اوريدو توفيق وركړې چه واورى نو قبلوى هم. ته مړوته نه شې اوروئې.يعنى څنګه چه څوك د مرګ نه پس په قبركښې ښخ كړې شى اوته هغه ته چغې وهې نودابې كاره دى.دغه شان كافران دى چه هدايت اودعوت دهغوى دپاره بې كاره دې.دغه شان په دې مشركانو باندې هم دهغوى بدبختى راخوره شوې ده اود هغوى د هدايت هيڅ صورت باقى پاتې نه دې ته هغوى په يوشان هم هدايت ته نه شې راوستې. ته خو صرف خبرووركونكې ئې. ستا په ذمه باندې صرف تبليغ دې هدايت اوضلالت وركول د الله ﷻ د طرف نه دى.

**قوله تعالى:- اِنْ اَنْتَ اِلَّا نَذِيْرٌ۝**

**د انبياء كرامو بعثت د عذر ختمولو دپاره شوې دې:**-د حضرت آدم عليه السلام نه واخله ترننه پورې رسولان راتله دې د پاره چه دهغوى عذرباقى پاتې نه شى.لكه چه بل آيت كښې فرمائى﴿وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ۝﴾ (۳)يوبل ځاى ارشاد دى ﴿ وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ هَدَى اللّٰهُ وَمِنْهُمْ مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلٰلَةُ ؕ فَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ۝﴾(۴)وغيره.دهغوى تادروغ ګنړل څه نوې خبره نه ده. د دوى نه وړاندې خلقو هم د الله ﷻ رسولان دروغ ګنړلى چه لوئ لوئ معجزې ښكاره ښكاره دليلونه اوصاف صفا

---
(۱) ٦/الانعام:۱۲۲.
(۲) ۱۱/هود:۲٤.
(۳) ۱۳/الرعد:۷.
(۴) ۱٦/النحل:۳٦.

اياتونه نې راوړې راغلې وو اودهغوی په لاسونوکښې نوراني صحيفې وې.اخردهغوی ددروغوګنړلو نتيجه داشوه چه ماهغوی په عذابونواوسزاګانوکښې راګیر کړل.ګوره چه بیازمادانکارنتیجه څه اوشوه څنګه تباه اوبرباد کړې شو.والله اعلم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَمۡ تَرَ | | اَنَّ اللّٰهَ | | اَنۡزَلَ | |
| آيا نه ګورې ته | چې بيشکه الله | نازلې کړې | | | |
| آيا تا نه دې ليدلې چې الله ﷻ | | | | | |
| مِنَ السَّمَآءِ | مَآءً | فَاَخۡرَجۡنَا | بِهٖ | ثَمَرٰتٍ | مُّخۡتَلِفًا |
| دآسمان نه | اوبه | پس رااوويستلې مونږه | په هغې سره | ميوې | چې مختلف دی |
| د پورته نه اوبه راوروی ....بيادهغې په ذريعه مونږ رنګ رنګ ميوې راتوکولې | | | | | |
| اَلۡوَانُهَا | وَمِنَ الۡجِبَالِ جُدَدٌۢ | بِيۡضٌ | وَّحُمۡرٌ | مُّخۡتَلِفٌ | اَلۡوَانُهَا |
| رنګونه دهغې | او دغرونونه | توتې دی | سپينې | او سرې | چې مختلف دی | رنګونه دهغې |
| اودغه شان غرونو کښې هم نګ رنګ غرونه دی | څه سپين او څه سره دی | چې دهغې هم قسم قسم رنګونه دی | | | |
| وَغَرَابِيۡبُ سُوۡدٌ | وَمِنَ النَّاسِ | وَالدَّوَآبِّ | وَالۡاَنۡعَامِ | | |
| او ځينې تك توروی | او دخلقو نه | او دګرزيدونکو زنده سرو نه | او دخاروو نه | | |
| او څه تک تور دی | او دغه شان په انسانانو اوپه ځناورو اوپه خاروو کښې هم | | | | |
| مُخۡتَلِفٌ | اَلۡوَانُهٗ | كَذٰلِكَ | اِنَّمَا يَخۡشَى اللّٰهَ | مِنۡ عِبَادِهِ | |
| چې مختلف دی | رنګونه دهغې | همدغه رنګې | بيشکه يريږی دالله نه | دبندګانو دهغه نه | |
| بعضې داسې دی | چې رنګونه ئې بدل بدل دی | دالله ﷻ نه خو بس د هغه په بندګانو کښې عالمان | | | |
| الۡعُلَمٰٓؤُا | اِنَّ اللّٰهَ | عَزِيۡزٌ | غَفُوۡرٌ | | |
| عالمان خلق | بيشکه الله | غالب دی | بښونکې دې | | |
| ويريږی | ......بيشکه الله ﷻ په هر چا غالب اوبښونکې دې | | | | |

قوله تعالى:- مُّخۡتَلِفًا اَلۡوَانُهَا

مختلف رنګونه هم دالله ﷻ قدرت دې :-درب د قدرتونوکمالونه ګوره چه هم په يو قسم څيزونوکښې قسم قسم رنګونه ښکاری. يواوبه د آسمان نه راکوزيږی اوهم په دې سره د مختلف قسم او رنګ په رنګ ميوې راپيداکيږی.سورسپين شين وغيره. دغه شان د هريوخوشبوجداجدا د هريوخوند بيل بيل. لکه چه بل آيت کښې دی (وَفِي الۡاَرۡضِ قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ وَّجَنّٰتٌ مِّنۡ اَعۡنَابٍ وَّزَرۡعٌ وَّنَخِيۡلٌ صِنۡوَانٌ وَّغَيۡرُ صِنۡوَانٍ يُّسۡقٰى بِمَآءٍ وَّاحِدٍ ۟ وَنُفَضِّلُ بَعۡضَهَا عَلٰى بَعۡضٍ فِي الۡاُكُلِ ؕ اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّعۡقِلُوۡنَ)[1] يعنې چرته انګوردی اوچرته کهجورې دی چرته فصلونه وغيره دی دغه شان د غرونوپيدائش هم په قسم قسم دې څه سپين دی څه سره دی اوڅه تور دی.په چا لارې او وادنی دی څوك اوږده دی اوڅه كندې كپرې.ددې بې ساځيزونونه پس په سا والا باندې نظرواچوه.انسانان ځناور ځاروی اوګوره په دوی کښې هم دالله ﷻ وضع کړې شوې ګل کارنی

[1] ۱۳/الرعد:٤.

دي.بربرحبشي طماطم بالکل تك تور وي صقاليه رومي بالکل سپين عرب درميانه هندي دوی سره نيزدې نيزدې. وبل آيت کښې دی ﴿وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَانِكُمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْعَالِمِينَ﴾[1] ستاسود خبرو اختلاف ستاسودرنګونواختلاف هم دیوپوهیدونکی دپاره دکامل قدرت یوه نښه ده.دغه شان ځاروی اونورځناوررنګونواوشکلونوکښې جداجدادی.بلکه هم دیوقسم ځناوروکښې دهغوی رنګونه هم مختلف دی. بلکه دیوقسم ځناور په بدن باندې مختلف رنګونه وی.سبحان الله دټولونه ښه خالق الله ﷻ څنګه دبرکتونووالا دې. مسندالبزارکښې دی یوسړی د رسول الله ﷺ نه سوال اوکړو چه الله ﷻ د رنګونوګډوډوالي هم کوی حضور ﷺ اوفرمائیل او. داسې رنګ ورکوی چه چرې به هم پیکه کیږی نه سور زیړ اوسپین. (۲) داحدیث مرسل اوموقوف هم نقل دې.

**قوله تعالی:- إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ**

**حقیقی عالم څوک ته وائی ؟:-** دې نه پس ئی اوفرمائیل چه څومره د الله ﷻ نه ویره کول پکاردی دومره ویره خو دهغه نه صرف علماء کوی؟ځکه چه هغوی پوهیږی اوپیژنی. په حقیقت کښې چه کوم سړی د الله ﷻ دکوم قدرت متعلق څومره معلومات ډیرلری نوهم هغه هومره به د دغه عظیم قدیر علیم الله ﷻ عظمت او بزرګی دهغه په زړه کښې زیاتیږی اودومره به د هغه ویره دهغه په زړه کښې زیاته وی څوك چه پوهیږی الله ﷻ په هرڅه باندې قادر دې هغه به قدم په قدم دهغه نه ویریږی. د الله ﷻ سره هغه نه رښتونې علم حاصل دې. څوك چه د هغه ذات سره څوك شریك نه کړی. دهغه حلال کړې شوې حلال او حرام کړې شوی کارونه حرام اوګنړی. د هغه په فرمان باندې یقین اوکړی د هغه د وصیت ساتنه اوکړی. دهغه ملاقات حق اوګنړی اود خپلو عملونو حساب رښتیا اوګنړی. ویره یوقوت وی چه د بنده اوالله ﷻ د نافرمانئی په مینځ کښې حائل کیږی نوعالم خو وائی هم ده ته چه پټ هم د الله ﷻ نه ویریږی او دالله ﷻ درضامندئی رغبت کوی اودهغه دخفګان دکارونونه نفرت کوی.ابن مسعود ؓ فرمائی چه د خبرو زیاتوالی نوم علم نه دې علم نوم دې په کثرت سره دالله ﷻ نه ویریدلوته. دحضرت امام مالك ؒ قول دې چه د روایاتوکثرت علم نه دې علم خویونور دې کوم چه الله ﷻ د خپل بنده په زړه کښې اچوی.احمدصالح مصری ؒ فرمائی علم د روایاتود کثرت نوم نه دې بلکه علم نوم دې دهغه د کوم تابعداری چه د الله ﷻ د طرف نه فرض دې یعنی کتاب اوسنت اوکوم چه د صحابه کرامو ؓ او انه حضراتو نه رسیدلې وی هغه په روایت سره حاصلیږی. نوراورڼا کومه چه د بنده نه وراندې وراندې کیږی هغه علم اود هغې په مطلب باندې ښه پوهیږی.

**علماء کرامو قسمونه**.روایت دې چه دعلماؤدرې قسمونه دی عالم بالله عالم بامرالله اوعالم بالله او بامرالله.عالم بالله عالم بامرالله نه دې اوعالم بامرالله عالم بالله نه دې. اوعالم بالله اوبامرالله هغه دې چه دالله ﷻ نه ویریږی اوحدود اوفرائض پیژنی. عالم بالله هغه دې چه دالله ﷻ نه ویریږی خوحدوداو فرائض نه پیژنی.عالم بامرالله هغه دې چه حدود اوفرائض خوپیژنی خودهغه زړه د الله ﷻ د ویرې نه خالی وی.

| | |
|---|---|
| يَتْلُونَ | إِنَّ الَّذِينَ |
| چې لولي | بيشکه هغه کسان |
| بيشکه هغه کسان چې | |

[1] ۳۰/الروم:۲۲.
[2] البزار:۲۹۴۴.

كِتٰبَ اللّٰهِ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ

كتاب دالله | او قائيموي مونځ | او خرچ كوي | دهغې نه | چې وركړي دي مونږ هغوئ له

خوک دالله ﷻ دكتاب تلاوت كوي | اود مونځ پابندي كوي | ...... ......او زمونږدوركړي رزق نه

سِرًّا وَّعَلَانِيَةً يَّرْجُوْنَ تِجَارَةً لَّنْ تَبُوْرَ ﴿۲۹﴾

په پټه | او په ښكاره | اميد لري هغوئ | دداسې تجارت | چې هرګز به نقصان نۀ كوي |

په پټه اوپه ښكاره خيراتونه كوي | هغوئ دداسې تجارت اميد لري | چې هيچرې تاوان نه كوي

لِيُوَفِّيَهُمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدَهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ

دپاره ددې چې الله پوره وركړي هغوئ له | اجرونه دهغوئ | اوزيات وركړي هغوئ له | دفضل خپل نه

دا ځكه چې الله ﷻ هغوئ ته (دخپل عمل) پوره پوره اجرونه وركړي | اوپخپل فضل ئې نور زيات كړي

اِنَّهٗ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ﴿۳۰﴾ وَالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ

بيشكه هغه | بښونكې دې | قدردان دې | او هغه | چې وحى كړې دې مونږه | تاته |

هغه بخښونكې قدردان دې اومونږ چې تاته داكتاب د وحى په ذريعه راليږلې دې

مِنَ الْكِتٰبِ هُوَالْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ؕ

دكتاب نه | هغه حق دې | تصديق كونكې دې | دهغه كتابونو | چې مخكښى ددې نه وؤ |

دا بالكل حق (كتاب) دې | اوددې نه وړاندې چې كوم كتابونه نازل شوى دى | دهغې تصديق كونكى دى

اِنَّ اللّٰهَ بِعِبَادِهٖ لَخَبِيْرٌ بَصِيْرٌ ﴿۳۱﴾ ثُمَّ

بيشكه الله | په بندګانو خپلو باندې | خامخا خبردار دې | نظر ساتونكې دې په هر څيز | بيا

بيشكه الله ﷻ دخپلو بندګانو په حال ښه خبر دې | ...... ......هرڅۀ وينى ګورى | ...............بيا

اَوْرَثْنَا الْكِتٰبَ الَّذِيْنَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا ۚ

وارثان كړل مونږه | ددې كتاب | هغه كسان | چې غوره كړل مونږه | دبندګانو خپلو نه |

داكتاب مونږه هغه بندګانو ته په ميراث كښې وركړو | چې مونږ په نورو بندګانو كښې غوره كړى وو

فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مُّقْتَصِدٌ ۚ

پس څينى دهغوئ نه | ظلم كونكې دې | په ځان خپل | او څينى د هغوئ نه | ميانه حال دى |

نواوس په كښې څوک په خپل ځان زياتې كوي | او څوک به كښې ميانه حال دى

وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرٰتِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ ذٰلِكَ هُوَ

او څينى دهغوئ نه | مخكښې كيدونكې دې | دنيكو سره | په حكم دالله | دا | هغه |

اوڅوک په كښې دالله ﷻ په فضل په نيكۍ كښې مخ په وړاندې روان دى | .........هم دا

الْفَضْلُ الْكَبِيْرُ ﴿۳۲﴾ؕ

فضل | لوئ دې |

ډير لوئې فضل دې |

**قوله تعالى:- إِنَّ الَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَٰبَ اللَّهِ**

**دمؤمنانوصفتونه:-** دمؤمنانوبنديګانويونيك صفت بيانولې شي چه هغوی دالله تعالى د كتاب په تلاوت كښې مشغول وی.په ايمان كښې وړاندې كيږی.عمل هم د لاس نه نه پريږدی.دمانځه پابندذكوة خيرات اموخته پټ اوښكاره د الله ﷻ بنديګانو سره ښه سلوك كونكى دى اودخپل مال دثواب دالله ﷻ نه اميدواردی.دكوم ملاويدل چه يقينى دى لكه ځنګه چه ددې تفسيرپه شروع كښې فضائل قرآن په ذكركښې مونږ بيان كړی دی چه كلام الله به خپل ملګری ته وائی چه هريوسوداګر خپل تجارت پسې دې اوته ټولو تجارتونوپسې ئې دوی ته به د دې پوره ثواب ملاويږی بلكه ډير زيات به ورته ملاويږی د كوم چه دوی خيال هم نه شی كولې.الله ﷻ د ګناهونوبښونكې دې اود لږ اووړوكى عمل هم قدردان دې.حضرت مطرف رحمه الله خو دې ته دقاريانو آيت وائی.دمسندپه يوحديث كښې دی الله ﷻ چه كله د يو بنده نه راضى كيږی نوپه هغه د نيكو ثناكوی كومې چه هغه كړې نه وی.اوكله چه دچانه ناراض شى نو دغه شان د بدو(۱) خودا حديث ډيرزيات غريب دې.

**قوله تعالى:- هُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا**

**قرآن پاک د الله ﷻ ريښتونې كلام دې :** قرآن پاك د الله ﷻ حق كلام دې ځنګه چه وړاندينو كتابونو د دې خبروركولودې هم دهغه وړاندينوريښتونوكتابونوصداقت ثابت كوی.رب خبير اوبصيردې.د فضيلت هر يو مستحق ښه پيژنی. انبياءكرامو ته الله ﷻ په انسانانوباندې هغه د خپل وسيع علم په وجه فضيلت وركړې دې.بيانی په انبياءكرامو كښې پخپلوكښې مرتبې مقرركړی دی.اوعلى الاطلاق محمد ﷺ درجه د ټولونه لوړه ده الله ﷻ دې په خپلو ټولو انبياءكرامو باندې سلام اوليګى.

**قوله تعالى:- ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَٰبَ**

**په قرآن پاک باندې عمل كونكې خلق او دهغوئ درې قسمونه:-** د كوم كتاب چه پورته ذكر شوې وو هغه بزرګ كتاب يعنى قرآن پاك مونږ هغه د خپلو خوښ كړې شوو په لاس كښې وركړو يعنى د دې امت په لاسونوكښې. بيا په دې درې قسمه خلق شو. بعضې خولږ شان وړاندې روستوشوهغه د نفس ظالمان ګڼلې كيدل دهغوی نه څه دحرمت والا كارونه هم شوی.بعضې درميانه درجه كښې دی كومو چه د محرماتونه ډډه اوكړه واجبات ئې په ځائ راوړل خوكله كله يو مستحب كار هم د هغوی نه پاتې شو او كله ترې وړه غوندې نافرمانی هم شوې. بعضې په درجوكښې ډير وړاندې شو واجبات خوپريږده چه مستحبات هم دهغوی نه نه دی پاتې شوی. محرمات څه چه دمكروهاتونه هم يوشان جداشو بلكه بعضې وخت ئې مباح څيزونه هم د ويرې نه پريخودی دی.

**د (اصْطَفَيْنَا)نه مراد څوک دی؟:-** ابن عباس رضي الله عنه فرمائی د خوښ كړې شوی بنده نه مرادامت محمديه دی چه دالله تعالى هريود كتاب وارث جوړكړې دې. په دوی كښې چه كوم په خپلو ځانونو باندې ظلم كوی هغوی به اوبښلې شی اوپه هغوی كښې چه كوم درميانه خلق دی دهغوی نه به په آسانئ سره حساب اخستې شی. اوپه دوی كښې چه كوم په نيكوكښې وړاندې كيدونكى دی هغوی به بې حسابه جنت ته بوتلې شی(۲)طبرانی كښې حضوراكرم ﷺ فرمائيلی زماشفاعت زمادامت د كبيره ګناه كونكو دپاره دی.ابن عباس رضي الله عنه فرمائی سابق خلق خوبه بغيردحسابه جنت كښې داخل كړې شی اوپخپلونفسونو باندې ظلم كونكى اواصحاب اعراف به د حضرت محمد ﷺ په شفاعت سره جنت ته ځی. (۳) الغرض د

---

(۱) احمد:۳/٤٠ ابن حبان:۳٦۸، مسندابی يعلى:۱۳۳۱، مجمع الزوائد:۱/۲۷۲.

(۲) الطبری:۲۰/٤٦۵.

(۳) طبرانی:۱۱٤۵٤

دي امت وړوکي گناهکاران به هم د الله ﷻ په خوښ کړې شوو بندیگانو کښې داخل وي.فالحمدلله.
د اکثروسلفوقول هم دادې خوبعضې سلفوداهم فرمائیلې دی چه داخلق خونه په دې امت کښې داخل دی اونه غوره شوی اوخوښ کړې شوی دی. نه د کتاب وارثان دی بلکه دې نه مرادکافرمنافق اوپه گس لاس باندې عمل نامه ورکړې شوی خلق دی. نودادریواړه قسمه هم هغه دی د کومو بیان چه د سورت واقعه په اول اوآخره کښې شوې دې. یعنی چه داکوم درې قسمونه شمیرکړې شوی دی دا د غوره خلقو نه دی بلکه د بندیگانودی یعنی ﴿عبادنا﴾ دی چه هغه کوم کوم قسمونه دی. خوصحیح قول هم دا دې چه داهم په دې امت کښې دی. امام ابن جریر رحمه الله هم دا قول خوښوی اود آیت ظاهری الفاظ هم دغه دی. د احادیثونه هم دا ثابتیږی. په یوحدیث کښې دی دادریواړه لکه چه یودی اودریواړه جنتیان هم دی(۱)داحدیث غریب دې اود دې حدیث په راویانوکښې یوراوی دې چه د هغه نوم ذکر نه دې.اوپه مرتبوکښې فرق کیدل لازمی دی.په دویم حدیث کښې دی حضورﷺ د دې آیت تلاوت کولونه پس اوفرمائیل سابقین خو به بې حسابه جنت ته داخلیږی اود درمیانه خلقو نه به په آسانئ سره حساب اخستې شي.او پخپلو نفسونوباندې ظلم کونکی دمحشر په اوږدوالی کښې به رامنع شي. بیابه ئې د الله ﷻ په رحمت باندې تلافی اوشی او دوی به وائي چه د الله ﷻ شکردې چه هغه زمونږ نه غم اوتکلیف لرې کړو.زمونږ رب ډیرغفورراو شکوردې چاچه په خپل فضل سره د اوسیدو داسې ځای راکړو چرته چه مونږ له هیڅ درد اوتکلیف نشته.(۲)
د ابن ابی حاتم په الفاظوکښې کمې زیاتې دې ابن جریر رحمه الله هم دا حدیث روایت کړې دې. په دې کښې دی چه ابوثابت رضي الله عنه جمات ته راتلواوحضرت ابودرداء رضي الله عنه سره کیناستو اودعائې کوله اې الله زما دپاره د وحشت سامان راکړې اوزماپه غریبئ باندې رحم اوکړې اوماته څوك ښه غوندې ملگرې کړې. دې اوریدو سره صحابی رضي الله عنه د هغه طرف ته متوجه شو اوورته فرمائی چه هم زه ستا ملگرې وو. واوره زه د رسول الله ﷺ هغه حدیث نن تاسو ته اورم کوم چه ما ترننه پورې چاته نه دې بیان کړې. بیا د دې آیت تلاوت اوکړوونی فرمائیل﴿سَابِقٌۢ بِالْخَیْرٰتِ﴾خو به جنت ته بې حسابه ځی او﴿مُّقْتَصِدٌ﴾ دخلقو نه به په آسانئ سره حساب اخستې شی. او﴿ظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ﴾ ته به لکه چه دې دنیا کښې غم اوتکلیف اورسی د کوم نه چه به خلاصې بیاموهی نووائی به دالله تعالی شکردې چاچه مونږ نه غم اودردلرې کړو. په دریم حدیث کښې دی حضوراکرمﷺ د دې دریواړو باره کښې فرمائیلی دی چه دا ټول هم د دې امت نه دی(۳)په څلورم حدیث کښې دی چه زما د امت به درې حصې وی یوه بې حسابه او بې عذابه جنت ته تلونکې ده، دویمه سره آسان حساب کیدونکې دې او بیا جنت ته داخلیدونکې. دریم به هغه ډله وی د کومونه چه به تپوس پوښتنه خامخاکیږی. خوبیا به فرښتې حاضریدوسره وائې مونږ دوی په لااله الاالله وحده ونیلو سره وینی. الله ﷻ به فرمائی رښتیادی چه زمانه بل څوك معبود نشته. ښه ده ما دوی د خپل دې وینا په برکت پریخودل. دوی جنت ته بوځئی اود دوی خطاگانې په دوزخیانو باندې واچوئی.
هم د دې ذکر﴿وَلَیَحْمِلُنَّ اَثْقَالَهُمْ وَاَثْقَالًا مَّعَ اَثْقَالِهِمْ وَلَیُسْئَلُنَّ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ عَمَّا كَانُوْا یَفْتَرُوْنَ﴾(۴)کښې دی.یعنی هغوی به خپل بوج سره ددوی بوج اوچتوی.د دې تصدیق پدې کښې دې په کوم کښې چه د فرښتو ذکردې. الله ﷻ پخپلو بندیگانوکښې کوم چه دکتاب وارثان جوړ کړی دی دهغوی ذکرکولوسره د هغوی درې قسمه خودلې شوی دی. په دې کښې چه په خپلو ځانونوظلم کونکی دی. د دې تپوس پوښتنه به کیږی.

---

(۱) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة الملائکة: ۳۲۲۵، احمد:۷۸/۳.
(۲) احمد:۱۹۸/۵:
(۳) طبرانی:٤۱۰، مجمع الزوائد:۹۹/۷، حاکم:٤۲٦/۲.
(٤) ۲۹/العنکبوت:۱۳.

حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چه د دې امت به د قیامت په ورځ درې ډلې وی. یوه بې حسابه جنت ته تلونکې، یوه په آسانئی سره حساب اخستونکې یوه ګناهګاره چه دهغې په نسبت به الله معلومان فرمائی سره د دې چه هغه ته ښه معلومه ده چه داڅوك دی؟ فرښتې به وائی اې الله ﷻ دوی سره خو لوئ لوئ ګناهونه دی. ولې دوی چرې هم تاسره څوك شریك نه دې ګرځولې. الله رب العزت به فرمائی چه دوی زما په رحمت کښې داخل کړه. بیا حضرت عبدالله ﷺ هم د دې آیت تلاوت اوکړو. (ابن جریر).دویم اثر دادې چه د حضرت عائشه صدیقه ﷺ نه د دې آیت باره کښې سوال اوکړې شو نوهغوی فرمائی بچې دا ټول جنتی خلق دی. ﴿سابق بالخيرات﴾ هغه خلق دی کوم چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې وو. کوموته چه پخپله رسول الله ﷺ د جنت زیرې ورکړې دې. ﴿مُقْتَصِدٌ﴾هغه دی کوم چه د هغوی د نقش قدم تابعداری کړې تردې چه هغوی سره ملاوشو. ﴿ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ﴾ زمااوستاپه شان دی.[1] خیال اوکړئی چه حضرت عائشه صدیقه ﷺ سره د دې چه ﴿سَابِقٌ بِالْخَيْرٰتِ﴾ نه بلکه د دې نه هم د بهتر درجې والا نه ده خوځنګه خپل ځان عاجزګنړی. په حدیث کښې راغلی دی چه په ټولوښځو باندې دحضرت عائشه صدیقه ﷺ هغه فضیلت دې کوم فضیلت چه ثریدته په نورو خوراکونوباندې دی.[2] حضرت عثمان بن عفان ﷺ فرمائی ﴿ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ﴾خوزمونږ بدوان خلق دی﴿ مُّقْتَصِدٌ﴾ زمونږ د ښاریو خلق دی اوسابق زمونږ مجاهددی. (ابن ابی حاتم) حضرت کعب احبار ﷫ فرمائی درې قسمه خلق د دې امت نه دی اوټول جنتیان دی. ځکه چه الله ﷻ د دې دریوارو قسموخلقوذکرکولونه پس دجنت ذکر فرمائیلو سره بیافرمائی﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ ۚ لَا يُقْضٰى عَلَيْهِمْ فَيَمُوتُوا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُم مِّنْ عَذَابِهَا ۚ كَذٰلِكَ نَجْزِي كُلَّ كَفُورٍ ﴾[3]داخلق دوزخیان دی.(ابن جریر) حضرت ابن عباس ﷺ د کعب ﷫ نه د دې آیت باره کښې سوال اوکړو نوهغوی اوفرمائیل دکعب درب قسم دا ټول هم په یوه زمره کښې دی.اود عملونو به مطابق د هغوی درجې کمې زیاتې دی. ابواسحاق سبیعی ﷫ هم د دې آیت باره کښې فرمائی چه دا درې واړه قسم ډلو خلاصې بیامونډلې دی.

محمدبن حنفیه ﷫ فرمائی دااُمت مرحومه دې.ددې ګناهګاران به اوبښلې شی اوددوی مقتصدبه الله ﷻ سره په جنت کښې وی اود هغوی سابق به په اوچتو درجوکښې وی. محمدبن علی باقر ﷫ فرمائی چه دلته کوموخلقوته ﴿ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ﴾ وئیلې شوې دې داهغه خلق دی کومو چه ګناهونه هم کړی وو او نیکئی هم. دا احادیث اوآثار مخې ته کیخودو سره داخوصفامعلومیږی چه په دې آیت کښې عموم دې اود دې امت د دې دریوارو ډلوته دا شامل دې. نوعلماء کرام ددې نعمت سره د ټولونه زیات د رشك قابل ئی. اود دې رحمت د ټولونه زیات حقداردی.

**ددین په طلب کښې د وتونکی فضیلت**:-لکه چه دمسنداحمدپه حدیث کښې دی یوسړی د دمشق نه حضرت ابودرداء ﷺ له څی اوهغوی سره ملاقات کوی نوهغوی معلومات کوی چه خوږه روره دلته دې ځنګه راتګ اوکړو؟ هغه وائی د دې حدیث د اوریدو د پاره راغلې یم کوم چه تاسو بیانوئی. تپوس ئی اوکړودخه تجارت په غرض سره نه ئی راغلې؟جواب ئی ورکړو نه. تپوس ئی اوکړوبیا به دې څه بل مطلب وی؟ وئیل هیڅ مطلب مې نشته. بیائی تپوس اوکړوچه د حدیث دطلب د پاره دې داسفراوکړو؟ جواب ئی ورکړو چه او. وئی فرمائیل چه واوره ماد رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی کوم سړې چه د علم د لټون دپاره په یوه لار لاړشی الله ﷻ به هغه دجنت باغونوته اورسوی.د الله ﷻ د رحمت فرښتې د طالب

---

[1] ) حاکم:٤٢٦/٢

[2] ) صحیح بخاری کتاب اصحاب النبی باب فضل عائشة رضی الله عنها: ٣٧٧٠، صحیح مسلم:٢٤٤٦.

[3] ) ٣٥/فاطر:٣٦.

علمانودپاره وزرې خوروي.ځکه چه هغوی دده نه ډیر خوشحالیږي.اودهغه دخوشحالئی غوښتنې کوي.دعالم دپاره دزمکې او آسمان هریوڅیزاستغفارکوي.تردې چه په اوبوکښې دننه کبان هم. په عابد باندې د عالم فضیلت داسې دې لکه د سپوږمئی فضیلت چه په ستورو باندې دې. عالمان د انبیاؤ کرامو وارثان دي. انبیاؤکرامو په خپل وراثت کښې درهم اودینارونه نه دي پریخي د هغوی وراثت د دین علم دې چاچه دا واخستلو هغه ډیر لوئ دولت حاصل کړو(۱)د دې حدیث ټول طریق الفاظ اوشرح ما د صحیح بخاري کتاب العلم په شرح کښې په تفصیل سره بیان کړی دی. فالحمدلله. د سورت طه په شروع کښې هغه حدیث تیرشوی دې کوم کښې چه رسول الله ﷺ فرمائي د قیامت په ورځ به الله ﷻ علماؤ ته فرمائي ما خپل علم اوحکمت هم د دې د پاره درکړې وو چه زه تاسو اوبښم که تاسو هرڅنګه ني د دې ماته هیڅ پرواه نشته.(۲)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| جَنّٰتُ عَدْنٍ | يَّدْخُلُوْنَهَا | | | | | |
| جنتونه دی دهمیشه اوسیدو | چی ننوزي به دا خلق هغې ته | | | | | |
| دوئ دپاره د همیشه اوسیدو باغونه دي | چې دوئ بۀ ورته داخلیږي | | | | | |
| يُحَلَّوْنَ | فِيْهَا | مِنْ اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ | وَّلُؤْلُؤًا | | | |
| ښائیسته کولې به شي | په هغې کښې | په بنګړو دسرو زرو سره | او په ملغلرو سره | | | |
| هلته به ورته ........ د سرو زرو بنګړي او ملغلرې اچولې شي | | | | | | |
| وَلِبَاسُهُمْ | فِيْهَا | حَرِيْرٌ ۝ | وَقَالُوا | الْحَمْدُ | لِلّٰهِ | الَّذِیْ |
| او جامې دهغوئ به | په هغې کښې | دریښمو وي | او وائي به | ثناده | الله لره | هغه (الله) |
| او هلته به دهغوی جامې د ریښمو وي | اودا بۀ وائي چې ټول تعریفونه الله ﷻ دپاره دی | کوم | | | | |
| اَذْهَبَ | عَنَّا | الْحَزَنَ | اِنَّ رَبَّنَا | لَغَفُوْرٌ | شَكُوْرٌ ۝ | |
| چې لرې ني کړو | زمونږ نه | خفګان | بیشکه رب زمونږ ه | خامخا بښونکې دې | قدرکونکې دې | |
| چې زمونږ نه غم لرې کړو | ............زمونږ رب یقینا بښونکې اوقدردان دې | | | | | |
| الَّذِیْٓ | اَحَلَّنَا | دَارَ الْمُقَامَةِ | مِنْ فَضْلِهٖ | لَا يَمَسُّنَا | | |
| هغه ذات | چې دیره ني کړومونږه | په کورداستوګنې کښې | په فضل خپل سره | (اوس) نۀ رسیږي مونږ ته | | |
| هغه ذات چې مونږ ني په خپل فضل سره دهمیشه اوسیدو ځائي ته راوستو | چې نه به په کښې | | | | | |
| فِيْهَا | نَصَبٌ | وَّلَا يَمَسُّنَا | فِيْهَا | لُغُوْبٌ ۝ | | |
| په دې کښې | مشقت (سختي) | اونه رسیږي مونږ ته | په دې کښې | ستړې والې | | |
| راته څه تکلیف رارسي | اونه به چرې ستړې کیږو | اوکومو کسانو چې کفر کړې دې | | | | |

(۱) ابوداؤد کتاب العلم باب فی فضل العلم:۳٦٤١ ترمذی:۲٦۸۲،ابن ماجه:۲۲۳، احمد:۱۹٦/۵، ابن حبان:۸۸.
(۲) الطبری:۱۳۸۱.

**قوله تعالى:- جَنّٰتُ عَدۡنٍ**

**په جنتيانوباندې انعامونه:** فرمائي چه کوم غوره خلق مونږ دکتاب الله وارثان کړی دی هغوی به د قيامت په ورځ دهميشه والي د موداموالي اوابدی نعمتونووالا جنتونوته رسوو.چرته چه به هغوی ته دسرو زرو او سپينو زرو بنګړی اچولې شی. په حديث کښې دی چه دمؤمن کالي به ترهغه ځائ پورې وی دکوم ځائ پورې چه د ده د اودس اوبه رسی[1] دهغه لباس به هلته د خالص ريښمو وی د څه نه چه هغوی په دنيا کښې منع کړې شوی وو.

**قوله تعالى:- يُحَلَّوۡنَ فِيۡهَا مِنۡ اَسَاوِرَ مِنۡ ذَهَبٍ وَّلُؤۡلُؤًا**

**دنيا کښې سرۀ زر او ريښم استعمالولونکې به جنت کښې ددې نه محروم وی:-** حديث کښې دي کوم سړې چه دلته په دنياکښې حرير اوريښم اغوندی هغه ته به په آخرت کښې دانه شی اغوستلې[2] يوبل حديث کښې دی چه دا ريښم د کافرانو د پاره په دنياکښې دی اود ستاسود مؤمنانود پاره په آخرت کښې دی.[3] حديث کښې دی رسول الله ﷺ د جنتيانود کالو باره ذکر کولوسره اوفرمائيل دوی ته به د سرو زرواو سپينوزروکالي اچولې شی چه مرغلرې به په کښې پيللې شوې وی.دهغوی په سرونوبه د ياقوتو تاجونه وی چه بالکل بادشاهانه غوندې به وی هغوی به ځوانان وی د بغيرويښتو والا سره ښنو سترګو والا. هغوی به دالله تعالى شکريه اداکولوسره وائی د الله ﷻ احسان دې چاچه زمونږ نه خوف اوويره ختمه کړه اود دنيا اوآخرت دپريشانو اوپښيمانونه ئې مونږ له خلاصې راکړو.په حديث شريف کښې دی لا اله الا الله والا باندې به په قبرونوکښې اوپه ميدان محشرکښې هيڅ ويره اوغم نه وی. زه خوهغوی اوس وينم چه د خپلوسرونونه دوړې څنډی وائی دالله ﷻ شکر دې چاچه مونږ نه غم اوخفګان لرې کړو.په طبرانی کښې دی د مرګ په وخت کښې به هم په هغوی باندې څه ويره نه وی.دحضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه د هغوی لوئ لوئ او ډيرزياتې خطاګانې به معاف کولې شی. او ورې ورې اود کم مقدار والا نيکئی په قدر سره قبلولې شی.دوی به وائی دالله ﷻ شکردې چاچه په خپل فضل اورحم سره لطف اوکرم سرد داپاک اواوچت مقامات راکړه.زمونږ عملونه خود دې قابل نه وو.په يوبل حديث شريف کښې دی په تاسوکښې يوهم دهغه عمل جنت ته نه شی رسولې.خلقو تپوس اوکړو تاسو هم؟ وئې فرمائيل زه خو په هغه صورت کښې چه د الله ﷻ رحمت ماسره وی[4] هغوی به وائی چه دلته خومونږ ته نه د څه قسم مشقت اومحنت شته اونه سترې کيدل او تکليف شته. روح ئې خان له خوشحاله دې او بدن ئې خان له. دابدله ده د کوم چه په دنياکښې دالله ﷻ په لارکښې تکليفونه اوچت کړی وو.نن راحت اوهم راحت دې.دوی ته وئيلې شوی دی د خپلې خوښې اود خپل زړه د خوښې خوراک څښاک کوئی.دهغې په بدله کښې چه په دنياکښې تاسو زما فرمان بردارئی کړی دی.

| عَلَيۡهِمۡ | لَا يُقۡضٰى | نَارُ جَهَنَّمَ | لَهُمۡ | وَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا |
|---|---|---|---|---|
| په هغوئ باندې | حکم به نۀ کيږی | اوور ددوزخ | هغوئ لره دې | او هغه کسان چې کفر ئې کړې دې |
| اوکومو کسانو چې کفر کړې دې. هغوئ دپاره د دوزخ اور تيار دې | | نه به د هغوی په حق کښې د مرګ فيصله | | |

[1] صحيح مسلم كتاب الطهارة باب تبلغ الحلية حيث يبلغ الوضوء: ٢٥٠.
[2] صحيح بخاری كتاب اللباس باب لبس الحرير للرجال وقدرمايجوزمنه: ٥٨٣٤، صحيح مسلم: ٢٠٦٩، السنن الكبری: ٩٥٨٤.
[3] صحيح بخاری حواله سابق: ٥٨٣١، صحيح مسلم: ٢٠٦٧.
[4] صحيح بخاری كتاب المرضی باب تمنی المريض الموت: ٥٦٧٣، صحيح مسلم: ٢٨١٦، احمد: ٢/٢٦٤، ابن حبان: ٣٤٨.

فَيَمُوتُوا وَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ مِّنْ عَذَابِهَا ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِيْ

چې مړه شي |اونهٔ نه سپك كړې شي |دهغوئ نه |دعذاب ددغه دوزخ نه |دارنګې |بدله وركوؤ مونږه

كيږي چې مړه شي | (او بې غمه شي، اونه به ترې د دوزخ عذاب كمولې شي |مونږ هر يو كافرته هم دغه شان

كُلَّ كَفُوْرٍ ۚ وَهُمْ يَصْطَرِخُوْنَ فِيْهَا ۚ رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا

هر كفر كونكى ته |او هغوئ به فرياد كوى |په هغې كښې |اے ربه زمونږه |او باسې مونږه

سزا وركوو|او دوئ به په كښې دننه چغې وهى |چې اې زمونږ ربه مونږ ددې اور نه بهرته اوباسه

نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ اَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ

چې عمل اوكړوا نيك |مختلف دهغې نه|چې ووّمونږه |چې كوؤبه مونږ|آيا عمر نهٔ ووٌ دركړې مونږ تاسو ته

چې د نيكئ كارونه اوكړو |دهغې نه خلاف چې پخوا به مو كول| (الله تعالى به اوفرمائي) چې آيا مونږ تاسو

مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ

هغه قدرله |چې نصيحت اخلى | په هغې كښې | هغه څوك |چې نصيحت اغستل غواړى

ته دومره عمر نه وو دركړې | كه چا په كښې نصيحت قبلول غوښتئ نو قبلولې ئې شوا اوولې تاسو ته

وَجَآءَكُمُ النَّذِيْرُ ؕ فَذُوْقُوْا فَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ ؑ

او راغلې ووٌ تاسو ته | خبردارونكې | پس اوڅكئ مزه | پس نشته دې ظالمانولره| څوك مددګار

ويرونكې نه وو راغلې ؟نو اوس د عذاب خوند اوڅكئ | د ظالمانو د پاره به څوک مددګار نه وى

قوله تعالى:-وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَهُمْ نَارُ جَهَنَّمَ ۚ

د دوزخيانوسزا:-دنيكانوخلقو حال بيانولونه پس اوس دخرابوخلقو حال بيانولې شي چه دوى به د دوزخ په اُوركښې سوزيږى اولولپه كيږى.هغوى له به هلته مرګ هم نه راخى چه مړه شي. لكه چه بل آيت كښې دى ﴿ثُمَّ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى ؕ﴾(١)نه به هغوى له هلته مرګ راخى اونه به څه ښه ژوندملاويږى. صحيح بخارى كښې دى رسول الله ﷺ فرمائى كوم چه ابدى دوزخيان دى هغوى ته به هلته مرګ نه راخى اونه به ورته ښه ژوند ملاويږى. (٢) هغوى به وائى اې د جنت داروغه هم ته الله ﷻ ته دعااوكړه چه هغه مونږ له مرګ راولى. خوجواب به ملاويږى چه تاسو خو به هم دلته پراته ئى. نوهغوى خو به مرګ د ځان د پاره راحت ګنړى. خوهغه به ورله راخى نه، نه به مرى اونه به ئى په عذابونوكښې څه كمې راخى. لكه چه بل آيت كښې دى ﴿اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ۚ لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ ۚ﴾(٣)يعنى كافران به هميشه په عذاب كښې پراته وى كوم عذاب چه به چرې هم نه اخواكيږى نه به كميږى. دوى د تولې ښيګړې نه نااميده شي يوبل ځاىٔ ارشاد دې ﴿كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ۞﴾(٤)ددوزخ اُوربه هميشه تيزيږى.

(١) ٨٧/الاعلى:١٣.
(٢)صحيح مسلم كتاب الايمان باب اثبات الشفاعة واخراج الموحدين من النار:١٨٥، احمد:١١/٣، ابن ماجه:٤٣٠٩، ابن حبان:١٨٤.
(٣) ٤٣/الزخرف:٧٤-٧٥.
(٤) ١٧/الاسراء:٩٧.

فرمائی ﴿فَذُوقُوا فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا﴾([1]) واخلئی اوس مزه اوڅکئی ستاسو د پاره هم عذاب دی چه ستاسو دپاره به زیاتیږی اودکافرانوهم دغه بدله ده.هغوی به چغې صورې وهی اوهائی وائی به کوی ددنیا طرف ته به واپس کیدل غواړی اقراربه کوی چه اوس به مونږگناه نه کوونیکئی به کوو. خوالله تعالی ښه پوهیږی که دوی واپس هم لاړشی نوهم هغه سرکشی به کوی. د دې د پاره به د دوی دا ارمان نه شی پوره کولې. لکه چه بل ارشاد دې چه دوی ته به د دې سوال په جواب کښې وئیلې شی چه تاسو هم هغه ئی چه کله به د الله ﷻ د وحدانیت بیان کیدلو نوتاسو به انکارکولو. هلته به تاسوله د هغه سره به شرك کولوکښې مزه درتله. نوکه اوس هم تاسو واپس کړې شونی نو هم هغه به کونی د کوم نه چه منع کولې شونی. نو فرمائی به په دنیاکښې تاسو ډیر ژوندتیرکړو تاسو په هغه اوږد ژوندکښې هرڅه کولې شو. مثلاً اویاکاله ژوندی پاتې شونی.

**قوله تعالى:-أَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ**

**طویل عمر هم په انسان حجت وی:**-قتاده رحمه الله فرمائی چه اوږدعمر هم دالله ﷻ د طرف نه حجت پوره کیدل دی.دالله ﷻ نه پناه غوښتل پکاردی چه دعمرزیاتیدوسره انسان په بدوکښې هم وړاندې کیږی.که اوګورې نودا آیت چه د کله نه نازل شوې دې هغه وخت بعضې خلق هم د اتلسو کالودعمر وو. وهب بن منبه رضی الله عنه فرمائی چه دې نه مراد شل کاله عمر دې. حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی د څلویښتوکالوپه عمرکښې انسان له هوښیاریدل پکاردی.ابن عباس رضی الله عنه فرمائی دومره عمر ته رسیدل د الله ﷻ د طرف نه عذر بندیدل دی. هم دهغوی نه شپیته کاله نقل دی. اوهم دغه زیات صحیح هم دی. لکه چه په یو حدیث کښې هم دی.

امام ابن جریر رحمه الله ددې په سندکښې کلام کوی خود هغه کلام ټیك نه دې. دحضرت علی رضی الله عنه نه هم شپیته کاله روایت دی. حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه د قیامت په ورځ به یوآواز داهم وی چه شپیتو کالو عمر پورې رسیدونکی کوم ځائ دې؟ خود دې سندصحیح نه دې. مسنداحمدکښې دی رسول الله ﷺ فرمائی څوك چه الله تبارك وتعالی د شپیتو اویاؤ کالو عمر ته اورسول نودهغه به هیڅ یوعذردالله ﷻ په نیز نه چلیږی([2])صحیح بخاری کتاب الرقاق کښې دی دهغه سرې عذر الله ﷻ پرې کړوڅوك ئی چه شپیته کاله په دنیاکښې اوساتلو([3]) ددې حدیث نور اسنادهم دی. که چرې نه هم وی نو صرف دامام بخاری رحمه الله داپه خیل صحیح کښې نقل کول ددې دصحت د ثبوت دپاره کافی وو.د ابن جریر رحمه الله داویناچه د دې د سند لټولو ضرورت نشته د امام بخاری په صحیح وئیلوپه مقابله د یوې اوریشې هم قیمت نه لری. والله اعلم.بعضې خلق وائی چه دطبیبانو په نیز خپل عام عمر یوسل اوشل کاله دې.دشپیتوکالوپورې خوانسان لونیدوته وړاندې کیږی بیا په کمیدوباندې شروع شی. نو په آیت کښې هم داعمر مراد اخستل ښه دی اوهم دا د دې امت غالب عمر دې. یوحدیث کښې دی زما د امت عمرونه د شپیتواو اویاؤکالو پورې دی اود دې نه وړاندې کیدل ډیرکم دی.(ترمذی وغیره)([4])

امام ترمذی رحمه الله خود دې حدیث په نسبت فرمائی ددې بل یوسندهم نشته.خوحیرانتیاده چه امام صاحب رحمه الله داځنګه اوفرمائیل. د دې یوبل سند په ابن ابی الدنیاکښې موجود دې. اوپخپله په ترمذی شریف کښې هم دا حدیث په بل سندسره کتاب الزهدکښې نقل دې. په یوبل ضعیف حدیث کښې دی زما په امت کښې به د اویاؤکالوعمر والاهم ډیرکم وی. یوبل روایت کښې دی د حضوراکرم ﷺ نه د

---

[1] ) ۷۸/النباء: ۳۰.

[2] ) الطبری: ۲/۲۷۵.

[3] ) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب من بلغ ستین سنة فقد.....: ٦٤١٩، بیهقی: ۳/۳۷۰.

[4] ) ترمذی کتاب الدعوات باب اعمار امتی بین الستین الی السبعین: ۳٥٥٠، وهوحسن، ابن ماجه: ٤٢٣٦.

امت دعمر باره كښې سوال اوكړې شو نوحضوراكرم ﷺ اوفرمائيل چه پنځوس شپيته كاله عمر ئې دې. تپوس اوكړې شو داوياؤكالو والا؟ ونې فرمائيل ډيركم.الله ﷻ دې په هغوى باندې اواتياؤكالوپورې عمروالا باندې رحم اوكړى. (بزار)د دې حديث يوراوى عثمان بن مطر قوى نه دې.

**د رسول كريم ﷺ عمر مبارك څومره وو؟**:-په صحيح حديث كښې دى د رسول الله ﷺ عمر درې شپيته كاله وو (١)يوقول دې چه شپيته كاله وو. داهم ونيلې شوى دى پنځه شپيته كاله وو. والله ا علم. (تطبيق دا دې چه شپيته كاله ويونكى راوى دهايانې لګوى اواكانيانې پريږدى.دپنځه شپيتوكالووالا د پيدائش اووفات كال هم شميرى. د درې شپيتو كالووالا دا دواړه كاله نه لګوى نوهيڅ اختلاف نشته. فالحمدلله. مترجم)

**قوله تعالى:-** وَجَآءَكُمُ النَّذِيرُ ط

**د نذير څه مطلب دې؟**:-اوس تاسو له به ويرونكى راشى يعنى دسپينو ويښتووالايا پخپله رسول الله ﷺ ډيرصحيح قول دويم دې.لكه چه ارشاد دې ﴿هٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُولَىٰ﴾ (٢) داپيغمبرنذيردې. نوعمر وركول رسول جوړول ليګل خپل حجت ئې پوره كړو.دقيامت په ورځ هم چه كله مرګ غواړى نوهم دا جواب به ورته ملاويږى تاسوله حق راغلى وو.يعنى درسول ﷺ په ژبه مباركه مونږتاسوته دحق پيغام د ررسولې وو خوتاسو اونه منلو. يوبل آيت كښې دى ﴿وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا﴾(٣)مونږ چه تركومې رسول اونه ليګو عذاب نه كوو. په سورت تبارك كښې ارشاد دې كله چه دوزخيان په دوزخ كښې واچولې شى نو داروغه به د هغوى نه تپوس كوى ولې تاسو له ويرونكى نه وو راغلې؟ دوى به جواب وركړى چه او راغلې وو خومونږ هغه اونه منل هغوى مو واړه ګنړلو او ونيلې موچه الله ﷻ خو څه كتاب هډو راليګلې نه وو ته هسې د ځان نه وائې. نو نن به د قيامت په ورځ دوى ته ونيلې شى د نبيانود مخالفت مزه اوڅكئى چه ټول عمر مو دروغ ګنړل اوس نن بدله اوچتونى. واورئى هيڅ څوك به نه اودريږى چه ستاسو پكار راشى ستاسو څه امداد اوكړې شى هغوى مو د عذابونونه خلاص كړى اوبچ موكړى.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ | عٰلِمُ | غَيْبِ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ط | اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ | بِذَاتِ |
| بيشكه الله | عالم دې | په پټو څيزونو داسمانونو | او دزمكې | بيشكه هغه پوهيږى | په پټو رازونو |
| بيشكه الله ﷻ ته د اسمانونو او زمكې ټولې پټې خبرې معلوم دى او هغه ته د زړونو | | | | | |
| الصُّدُوْرِ | هُوَ الَّذِيْ | جَعَلَكُمْ | خَلٰٓئِفَ | فِي الْاَرْضِ ط | |
| دسينو باندې | هغه هغه ذات دې | چې جوړنې كړئ تاسو | خليفګان | په زمكه كښې | |
| پټ رازونه معلوم دى هغه داسې ذات دې چې تاسو ئې په زمكه باندې اباد كړئ | | | | | |
| فَمَنْ | كَفَرَ | فَعَلَيْهِ | كُفْرُهٗ ط | وَلَا يَزِيْدُ الْكٰفِرِيْنَ | |
| پس هغه چا | چې كفر اوكړو | نو په هغه باندې ده | سزا دكفر دهغه | اونه زياتوى كافرانو لره | |
| نوچا چې كفر غوره كړو نو دهغه دكفر سزا به هم هغه ته ملاويږى او د كافرانو كفر هغوى دپاره د الله په نيز | | | | | |

(١) صحيح بخارى كتاب المغازى باب وفاة النبى ﷺ:٤٤٦٦، صحيح مسلم:٢٣٤٩.
(٢) ٥٣/النجم:٥٦.
(٣) ١٧/الاسراء:١٥.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كُفْرُهُمْ | عِنْدَ رَبِّهِمْ | اِلَّا | مَقْتًا ۚ | وَلَا يَزِيْدُ | الْكٰفِرِيْنَ | |
| كفر دهغوئ | په نز درب دهغوئ | مګر | غضب (دالله) | اونهٔ زياتوى | كافرانو لره | |

د زياتي غصي سبب ګرځي | اود كافرانو كفر هم د هغوى د تاوان سبب ګرځي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كُفْرُهُمْ | اِلَّا | خَسَارًا ۞ | قُلْ | اَرَءَيْتُمْ | شُرَكَآءَكُمُ | الَّذِيْنَ |
| كفر دهغوئ | مګر | خساره (زيا نكارى) | ورته اووايه | ايا وينئ تاسو | شريكان ستاسو | هغه |

......| ائې محبوبه ) تپوس اوكړه چې ايا تاسو ته خپل هغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ | اَرُوْنِىْ | مَاذَا خَلَقُوْا | مِنَ الْاَرْضِ | |
| چې تاسو رابلئ هغوئ | بې دالله نه | اوښايئ ماته | څه څيز پيدا كړې دې هغوئ | دزمكې نه | |

شريكان معلوم دى چې تاسو ئې د الله ﷻ نه سوا رابلئ راته اوښائې چې هغوئ په زمكه كښې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ لَهُمْ | شِرْكٌ | فِى السَّمٰوٰتِ ۚ | اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ | كِتٰبًا | |
| يا دې هغوئ لره | شراكت | په اسمانونو كښې | يا وركړې دې مونږ دوئ له | څه ليكلې خط | |

څه پيدا كړې دى | يا په اسمانونو كښې د هغوئ څه شركت شته | يا (مونږ هغوئ ته څه كتاب

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَهُمْ | عَلٰى بَيِّنَتٍ | مِّنْهُ ۚ | بَلْ | اِنْ يَّعِدُ | الظّٰلِمُوْنَ | بَعْضُهُمْ |
| چې دوي | په ښكاره دليل دى | دهغې نه | بلكه | نهٔ كوى وعده | دا ظالمان | څينې ددوئ |

وركړې دې | چې هغوئ دكتاب په دليل ټينګ ولاړ دى | (داسې يو خبره هم ) نه بلكه دا ظالمان يوبل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَعْضًا | اِلَّا غُرُوْرًا ۞ | اِنَّ اللّٰهَ | يُمْسِكُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ |
| دځينو سره | مګر ددوكې | بيشكه الله | ساتى په قرار | اسمانونه | او زمكه |

سرد دروغو وعدې كوى | يقينا الله ﷻ اسمانونه او زمكه دواړه د راپريوتو نه راټينګ كړې دى |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنْ تَزُوْلَا ۚ | وَلَئِنْ زَالَتَآ | اِنْ اَمْسَكَهُمَا | مِنْ اَحَدٍ | |
| چې بې ځايه (نهٔ) شي | او كه بې ځايه شو دواړه | نو اوبه نهٔ ساتى دا دواړه په قرار | بل هيڅوك | |

............او كه دوئ ديو ځائې نه بې ځايه شي نو دالله تعالى نه سوا بل هيڅوک ئې نشى راټينګولې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْۢ بَعْدِهٖ ؕ | اِنَّهٗ | كَانَ | حَلِيْمًا | غَفُوْرًا ۞ |
| روستودالله نه | بيشكه هغه | دې | صبر ناك | بښونكې |

..........الله تعالى ډير بردبار او بښونكې دې |

**قوله تعالى:- اِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَيْبِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ**

**د الله ﷻ د كامل علم بيان:** الله ﷻ دخپل وسيع او بې پايانه علم بيان فرمائى چه هغه خودزمكې اوآسمان دهرڅيز عالم دې.دزړونو رازونه اود سينوپه خبرو باندې خبردار دې.هرعمل كونكى ته به دهغه د عمل بدله وركوى.هغه تاسو په زمكه كښې ديوبل خليفه جوړكړې نى.دكافرانودكفر وبال اونقصان هم پخپله په هغوى باندې دې.هغه چه په خپل كفرباندې وراندې كيږى د الله ﷻ خفګان په هغوي باندې زياتيږى

او دهغوی نقصان نور هم زیاتیږی. په خلاف دمؤمن چه څومره د هغه عمر زیاتیږی نیکئی هم زیاتیږی او درجې ورته حاصلیږی اود الله ﷻ په نیزباندې نور هم مقبول کیږی.

**قوله تعالی:-** اَرُوۡنِیۡ مَاذَا خَلَقُوۡا مِنَ الۡاَرۡضِ

**باطلومعبودانوهیڅ نه دی پیداکړی:** الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته فرمائی چه ته مشرکانوته اووایه چه د الله ﷻ نه بغیرتاسو چاچاته آوازونه کوئی تاسو ماته هم لږشان اوښائې چه هغوی څه پیداکړی دی؟یادا ثابت کړئی چه په آسمانونوکښې دهغوی څومره حصه داری ده؟ځکه چه هغه نه خالق دی اونه حصه دار نوتاسو بیاما ولې پریږدئی اوهغوی ته آوازونه کوئی. هغوی خودیوې ذرې هم مالکان نه دی. ښه ده که دا هم نه وی نوکم نه کم د خپل کفراوشرك چرته یوکتابی دلیل پیش کړئی خوتاسو داهم نه شئی کولې. حقیقت دادې چه تاسو صرف خپل نفسانی خواهش اوخپلې رائی پسې لګیدلې ئی هیڅ دلیل نشته دروغو اودهوکه کښې اخته شوی ئی.یو بل ته دهوکه ورکوئی.دخپلو دروغژنومعبودانو کمزورئی مخې ته کیږدئی اودالله ﷻ چه رښتونې معبود دې قدرت اوطاقت ته اوګورئی چه زمکه اوآسمان د هغه په حکم سره قائم دی.هریودخپل خپل ځائ شوې دې او ولاړدې.اخوادیخوا خوزیدې هم نه شی.آسمان په زمکه د راپریوتونه الله ﷻ منع کړې دې.دا دواړه د هغه په حکم باندې ولاړدی. د هغه نه بغیر هیڅ څوك نشته چه هغه رامنع کړی اوونی نیسی او په نظام باندې قایم اوساتی.حلیم اوغفورالله تعالی ته اوګوره چه دمخلوق اومملوك دنافرمانئی سرکشئی کفراوشرك کتلوسره هم د برداشت او ښښې نه کار اخلی.وخت اومهلت ئی ورکړې اوګناهونه معاف کوی.

**قوله تعالی:-** اِنَّ اللّٰهَ یُمۡسِکُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ

**ددې متعلق یو منکرحدیث:-** ابن ابی حاتم کښې ددې آیت د تفسیر لاندې یوغریب بلکه منکر حدیث دې چه د حضرت موسی ؈ یوه واقعه حضوراکرم ﷺ یوځل په منبرباندې بیانولوسره اوفرمائیل چه د هغه په زړه کښې خیال تیرشو چه دا الله ﷻ کله اوده کیږی هم؟ نو الله ﷻ هغه له یوه فرښته راولیګله چه دغې دې دریو ورځوپورې اوده کیدو ته پرینځودو. بیائی دهغه په یویولاس کښې یویو بوتل ورکړو اوحکم ئی ورکړو چه د دې حفاظت کوه داپریونه خې.مات نه شی. حضرت موسی ؈ دا په لاسونو کښې اونیول او حفاظت ئی کولوخود خوب غلبه وه پرکالې پرې راغلولږ شان جوته شونوداسې اوشوچه هغه هوښیارشو اوبوتل ئی پریوتوله ورنه کړو. خوآخر خوب غالب شو او بوتلې د لاس نه پریوتلې په زمکه ذره ذره شوې. مطلب دا دې چه اوده کیدونکې خودوه بوتلې هم نه شی نیولې نو که الله ﷻ اوده کیدو نودزمکې اوآسمان داحفاظت به ئی څنګه کولو خوپه ظاهره داسې معلومیږی چه دا د حضوراکرم ﷺ فرمان نه دې بلکه د بنی اسرائیلو جوړکړې شوې دې.

دحضرت موسی ؈ غوندې جلیل القدرپیغمبرهم داسې تصور کولې شی چه الله ﷻ اوده کیږی سره د دې چه الله ﷻ په خپلو صفاتوکښې فرمائیلی دی چه هغه ته نه پرکالې راځی اونه خوب. د زمکې او آسمان ټولوڅیزونومالك صرف هم هغه دې. بخاری اومسلم کښې حدیث دې الله ﷻ نه اوده کیږی اونه او ده کیدل دهغه د شان سره ښائی.هغه نه ښکته پورته کوی.دورځې عمل د شپې نه وړاندې اود شپې عمل د ورځې نه وړاندې د هغه طرف ته خیژی. د هغه پرده نور دې یا اُوردې. که داکولاوکړی نودهغه د مخ تجلیات به ترکوم ځائ پورې چه نظر رسیدې شی ټول مخلوق به اوسوزوی.(۱) ابن جریرکښې دی یو سړې حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه له راغلو هغوی دده نه تپوس اوکړو دکوم ځائ نه راغلې؟ هغه وئیل د شام نه. تپوس ئی اوکړو هلته چاسره ملاوشوې؟وئیل کعب سره. تپوس ئی اوکړو کعب څه خبره اوکړه؟ هغه وئیل چه دا آسمان د یوې فرښتې د اوږې پورې تاویږی. تپوس ئی اوکړوته دا رښتیااوګڼړل

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الایمان باب ل قوله علیه السلام (ان الله لاینام. ..):۱۷۹، ابن ماجه:۱۹۵، احمد:۳۹۵/۴،ابن حبان:۲۶۶.

که دروغ؟ جواب نی ورکړو هیڅ مې هم نه دی کړی. ونی فرمائیل چه بیاخوتاهیڅ هم نه دی کړی. ونیل واوره کعب غلط ونیلی بیا هغوی هم د دې آیت تلاوت اوکړو.ددې اسناد صحیح دی په دویم سندکښې د راتلونکی نوم دې چه هغه حضرت جندب بجلی ﷺ وو حضرت امام مالك رحمه الله هم ددې تردیدکولو چه آسمان په ګردش کښې دې اود دې آیت نه به نی دلیل اخستلو اود دې حدیث نه هم. په کوم کښې چه دی په مغرب کښې یوه دروازه ده کومه چه د توبې دروازه ده هغه به بندیږی نه ترکومې چه نمر د مغرب نه نه وی راختلې(¹)داحدیث دې.والله سبحانه وتعالی اعلم.

وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ

|اوقسمونه به خوړل دوی په الله باندې

| اودې کافرانو به په الله ﷻ

جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِن جَاءَهُمْ نَذِيرٌ لَّيَكُونُنَّ

په سختو قسمونو خپلو سره | که راغلې وې دوی ته | یو خبردارونکې | نو خامخا به وې دوی |

باندې ډیر سخت قسمونه خوړل| که چرته دوی ته څوک ویرونکې راغلو| نو مونږ

أَهْدَىٰ مِنْ إِحْدَى الْأُمَمِ ۖ فَلَمَّا جَاءَهُمْ نَذِيرٌ

زیات په صحیح لار | دیو دپخوانو امتونو نه | پس هر کله چې | راغي دوی ته | خبردارونکې |

به د بل هر امت نه زیات په هدایت شو|...............خو څه وخت چې ورته ویرونکې راغلو

مَّا زَادَهُمْ إِلَّا نُفُورًا ۝ اسْتِكْبَارًا فِي الْأَرْضِ

نو زیات نې نۀ کړو دوی لره | مګر په نفرت کښې | په سبب دتکبر کولو | په زمکه کښې |

نودې سره ددوی نفرت نور هم زیات شو|........ چې په دنیا کښې ئې خپل ځان غټ اوګڼړلو او

وَمَكْرَ السَّيِّئِ ۚ وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ ۚ

او په سبب دتدبیر خراب | اونۀ چاپیریږی | تدبیر خراب | مګر | په اهل خپل |

خراب خراب سازشونه ئې جوړ کړل | اود خرابو سازشونو نقصان پخپله سازشګرو ته رسیږی

فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا سُنَّتَ الْأَوَّلِينَ ۚ فَلَن تَجِدَ

پس نۀ کوی انتظار دوی | مګر | دطریقې دړومبنو خلقو | پس هر ګز به تۀ بیا نۀ مومی |

نوآیا دا خلق د مخکنو خلقو د انجام انتظار کوی؟ | نو ته به دالله تعالی په قانون کښې څه بدلی

لِسُنَّتِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ۖ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّتِ اللَّهِ تَحْوِيلًا ۝

طریقې دالله لره | څه تبدیلی | او بیا به نۀ مومې تۀ | طریقې دالله لره | اوړیدل دلارې مقررې نه |

بیا نه مومې| اود الله ﷻ قانون به هیڅکله اوړیدونکې بیا نه مومې

قوله تعالی:- وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ

¹) ترمذی کتاب الدعوات باب ماجاء فی فضل التوبة والاستغفار....: ۳۵۳۵ وهوحسن، ابن ماجه: ٤٠٧٠، احمد: ٢٤١/٤، ابن حبان: ۱۳۲۱.

**د کافرانو دهدايت قبلولو قسمونه خوړل:-** قريشو او عربو حضور ﷺ د بعثت نه وړاندې ډير قسمونه خوړلی ووکه دالله تعالى يو رسول مونږ له راغلو نو مونږ به د ټولې دنيانه زيات دهغه تابعداری کوو.لکه چه بل ځائ فرمان دي ﴿أَنْ تَقُولُوا إِنَّمَا أُنْزِلَ الْكِتَابُ عَلَى طَائِفَتَيْنِ مِنْ قَبْلِنَا وَإِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغَافِلِينَ﴾[1] يعنى ددې دپاره چه تاسو دااونه وئيلې شئی چه زمونږنه په وړاندې ډلوباندې کتابونه نازل شوولې مونږ خود هغې نه ناخبره پاتې يوکه په مونږ باندې کتاب نازل شوې وونو مونږ به دهغوی نه ډيرهدايت بيامونده ونکې وو.واخلئی اوس خوپخپله ستاسو درب دطرفنه تاسوته دليل راورسيدو.هدايت اورحمت نی پخپله ستاسوپه لاسونو کښې درکړو.اوس اوښائې چه درب دآياتونو تکذيب کونکو اودهغې نه مخ اړونکونه زيات ظالم څوك دې؟په نوروآياتونوکښې دی چه دوی به ونيل که مونږ سره دوړاندينوخلقو عبرت ناك حالات اوواقعات وې نومونږ به د الله ﷻ مخلص بنديګان جوړشوې وو. خوبيا هم هغوی ددې راتلونه پس هم کفراوکړو. اوس به ډيرزر هغوی ته د دې انجام معلوم شی. هغوی له د الله ﷻ آخری پيغمبر اود هغه آخری او غوره کتاب راغلې دې.خودوی په کفرکښې نورهم زيات شو. هغوی د الله ﷻ دخبرې منلونه کبراوکړو. پخپله نی اونه منل اودې سره نی پخپل مکرد الله ﷻ نوربنديګان دهغه د لارې نه رامنع کړل. خوهغوی له يقين کول پکاردی چه د دې نقصان به پخپله هم په دوی باندې وی دوی د الله ﷻ نه بلکه خپل ورانې کوی.

**قوله تعالى:-** ﴿وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ﴾

**د دهوکه بازو نه ځان ساتئی ددوئ انجام خراب وی.**-نبی کريم ﷺ فرمائی چه ددهوکه بازئی نه پرهيز کونی دمکريوج هم په مکار باندې وی اودهغې جواب ورکول به دالله ﷻ په وړاندې وی.حضرت محمدبن کعب قرظی رحمه الله فرمائی د دريو کارونو کونکی خلاصې نه شی موندلې د دغه کارونووبال او نقصان به هم په دوی وی. مکر بغاوت اووعدې ماتول بيا هغوی هم دا آيت تلاوت کړو. هغوی ته صرف ددې انتظاردې چه دهغوی په شان د هغوی نه د وړاندې خلقو حال شو چه د الله ﷻ د رسولانو تکذيب اود رسولانود فرمان مخالفت په وجه د الله ﷻ دهميشه والی عذاب په هغوی راغلونوداخود الله ﷻ عادت دې اوته غوراوکړه چه دالله ﷻ عادت بدليږی او واپس کيږی نه. په کوم قوم چه د الله ﷻ د عذاب اراده اوشوه بياد دې ارادې په بدلولوباندې څوك هم قدرت نه شی لرلې نه دهغوی نه عذاب اخوا کولې شی اونه هغوی د دې نه بچ کيدې شی اونه ئی څوك بچ کولې شی. والله اعلم.

| |
|---|
| أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ . فَيَنْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ |
| آيا نۀ ګرځی دوئ \| په زمکه کښی \| چې اوګوری \| څرنګې وو \| انجام \| دهغه کسانو \| |
| آيا دوئ د زمکې په مخ تګ راتګ نه کوی \| چې دا اوګوری چې دپخوانو خلقو |
| مِنْ قَبْلِهِمْ وَكَانُوا أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً ۚ وَمَا كَانَ |
| چې مخکښی وۀ ددوئ نه \| او وۀ هغوئ \| زيات سخت \| ددوئ نه \| په قوت کښی \| اونۀ دې |
| انجام څۀ شو \| ..............حال دا چې هغوئ ددې خلقو نه زيات زراور ووا او داسې څوک نشته |
| اللَّهُ لِيُعْجِزَهُ مِنْ شَيْءٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ ۚ إِنَّهُ كَانَ |
| الله \|چې عاجزه کړی هغه لره \| هيڅ څيز \| په اسمانونو کښی \| اونۀ په زمکه کښی \| بيشکه هغه دې |
| چې هغې دې الله لره عاجزه کړې شی \| نه په اسمانونو کښې او نه به زمکه کښې \| هغه |

[1] الانعام:۱۵۶ / ۶.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلِيمًا | قَدِيرًا۝ | وَلَوْ | يُؤَاخِذُ اللّٰهُ | النَّاسَ | بِمَا | كَسَبُوا | | |
| په هر څه عالم | قادر | او که چرې | نیولې الله | خلق | په سبب دهغې | چې دوی نې کوی | | |

په هر څه پوهه او صاحب د قدرت دې | او که چرته الله ﷻ د (گناهونو)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَا تَرَكَ | عَلٰى ظَهْرِهَا | مِنْ دَآبَّةٍ | وَّلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ | |
| نه به ووه پرېښودې هغه | په شا دهغې | څه زنده سرې | ولیکن روستو کوي دوئ | |

په سبب خلق نیول | ............ نو د زمکې په مخ به هیڅ ساه لرونکې باقي پاتې شوې نه وو | خو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى | فَاِذَا | جَآءَ | اَجَلُهُمْ | فَاِنَّ اللّٰهَ | كَانَ |
| نیتې مقررې نه | پس هر کله چې | راشي | نیته ددوئ | پس بیشکه الله | دې |

الله تعالی ورته تریو نیتې پورې مهلت ورکوی | نو څه وخت چې تاکلې وخت راشي | نو الله تعالی

| | |
|---|---|
| بِعِبَادِهٖ | بَصِيرًا۝ |
| په بندگانو خپلو باندې | الیدونکې |

.دبندگانو عملونه وینی گوری (بدله به ورکړی)

**قوله‌تعالی:- اَوَلَمْ يَسِيرُوْا فِى الْاَرْضِ**

**د تیروشوو قومونود انجام نه عبرت واخلئ:** حکم کولې شی چه دې منکرانوته اووایه چه په زمکه کښې دې اوگرځی اودې گوری چه د دوی په شان د دوی نه د وړاندې خلقو څه انجام شوې. دهغوی نعمتونه واخستې شو دهغوی محلونه وران کړې شودهغوی طاقت ختم کړې شو.دهغوی مال تباه کړې شو د هغوی اولاد هلاك کړې شو.دالله تعالی عذابونه دهغوی نه په یوشان طریقه هم اخوانه شو راتلونکې مصیبت ئی اخوا نه کړې شو رابنکلې شو تباه اوبربادکړې شو. هیڅ نی هم په کار رانغله اونه څه څیز فائده وراورسوله. الله ﷻ ته څوك ماتې نه شی ورکولې. هغه هیڅ یوکار عاجز کولې نه شی. دهغه هیڅ اراده دمراد نه جدا نه ده.دهغه یوحکم هم څوك اخواکولې نه شی هغه دټول کائنات عالم دې.هغه په ټولوکارونوقادردې.که هغه دخپلوبندیگانوپه گناهونو باندې نیول کول نودټولو آسمانونو او زمکو والا به هلاك شوې وو.ځناور اورزق ټول به برباد شوې وو.ځناورو ته به دهغوی دسورو اوجالو پورې عذابونه رسیدل. په زمکه باندې به هیڅ یوځناور بچ نه پاتې کیدو. خو اوس نی وخت ورکړې دې عذابونه نی روستوکړی دی.وخت راروان دې چه قیامت به قائم شی اوحساب کتاب به شروع شی. دتابعدارئی بدله او ثواب به ملاویږی د نافرمانئی عذاب او سزا به وی. داجل راتلونه پس به بیا وخت نه ملاویږی. الله ﷻ خپلو بندیگانوته گوری اوهغه ډیر ښه کتونکې دې.

**(فالحمدلله)** دالله تعالی په فضل اوکرم لطف اورحم سره د سورت فاطر تفسیر ختم شو.

| ایاتونه | سورة یٰس مکیة وهی ثلاث وثمانون اٰیة وخمس رکوعات | رکوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۸۳ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ۵ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| يٰسٓ۝ | وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ۝ | اِنَّكَ | لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ۝ |
| یاسین | قسم دې په قرآن حکیم باندې | بیشکه ته | خامخا درسولانو نه نې |

یاسین په قران پاك باندې قسم دې | چې د حکمتونو نه ډك دې | ته پیغمبرانو کښې یو (پیغمبر) یې

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ | تَنْزِيْلَ | الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ۝ | لِتُنْذِرَ |
| په لاره نیغه باندې ئې | نازل شوې دې | دغالب او رحیم دطرفنه | دپاره ددې چې ته اویروې |
| «دهدایت» په نیغه لار ولاړ یې | «داقران» دغالب اومهربان «الله تعالی» طرفنه نازل شوی دی | | چې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَوْمًا | مَّآ اُنْذِرَ | اٰبَآؤُهُمْ | فَهُمْ | غٰفِلُوْنَ ۝ |
| بو داسې قوم | چې نه دي یرولی شوی | پلاران ددوئ | پس دوئ | ناخبره دی |
| ته یرې هغه خلق «دعذاب نه» اوویروې | چې د هغوئ پلار نیکه چرې ویرولی شوی نه وو | | انو خکه بې خبره پاتې | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ | عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ | فَهُمْ | لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝ |
| په تحقیق ثابته شوې ده خبره د عذاب | په زیاتو خلقو ددوئ باندې | پس دوئ | ایمان نه راوړی |
| دی په دوئ کښې په زیاتو خلقو «دتقدیر» وینا ثابته شوې ده | نو اوس دوئ ایمان نه راوړی | | |

**د سورت یاسین فضیلت:**-ترمذی شریف کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی دهریوخیز زړه وی اودقران کریم زړه سورت یاسین دې.سورت یاسین لوستونکی ته دلسوقرآن پاك د ختم ثواب ملاویږی[۱]داحدیث غریب دې اوددې یوراوی مجهول دی. پدې باب کښې نور هم روایتونه دی خوسنداً هغه هم داسې څه ډیرښه نه دی. یوبل حدیث کښې دی کوم سړې چه د شپې سورت یاسین اولولی هغه ښنلې شی اوځوك چه سورت دخان اولولی هغه هم ښنلې شی[۲] د دې اسناد ډیرښکلی دی.دمسندپه حدیث کښې دی سورت بقره د قرآن پاك قوب دې اوددې اوچتوالې دې. د دې یویوآیت سره اتیااتیافرښتې راکوزیږی. ددې یوآیت یعنی آیت الکرسی دعرش لاندې نه راوړل شوې دې اودې سره ملاوشوې دې.سورت یاسین د قرآن پاك زړه دې داچه کوم سړې په نیك نیتنی سره د الله ﷻ د رضاد پاره اولولی دهغه ګناهونه معاف کولې شی. داد هغه خلقو په وړاندې تلاوت کوئی چه د زنکدن په حالت کښې وی.[۳] د بعضو علماؤ کرامو قول دې د کوم کاریه وخت کښې چه سورت یاسین لوستلې کیږی الله ﷻ هغه آسانوی.دمړکیدونکی په وړاندې چه ددې تلاوت کولې شی نورحمت اوبرکت نازلیږی اوروح ئې په آسانی سره اوځی.والله ﷻ اعلم.مشائخو هم فرمائیلی دی چه په داسې وخت کښې سورت یاسین لوستلو سره الله ﷻ تخفیف آسانی کوی.بزارکښې د رسول الله ﷺ فرمان دې زما خوښه ده چه زما د امت هریوکس ته داسورت یاد وی[۴]حروف مقطعات کوم چه د سورتونوپه شروع کښې وی لکه دلته چه ئې د دې پوره بیان مونږ د سورت بقره د تفسیرپه شروع کښې کړې دې. دلته بیاد سردوباره کولو ضرورت نشته.

**قوله تعالی:- یٰسٓ ۝**

**ددې څه مطلب دې؟:**-بعضې خلقو وئیلې دی چه دیسٓ نه مراد "اې انسان" دې بعضې وائی چه په حبشی ژبه کښې د "اې انسان" په معنی کښې دالفظ دې. ځوك وائی چه دا دالله ﷻ نوم دې. بیافرمائی چه قسم دې د محکم اومضبوط قرآن پاك د کوم خواله چه هم باطل نه شی راتلې چه په یقین سره اې محمد ﷺ ته د الله ﷻ رښتونې رسول ئې. په رښتونی ښکلې مضبوط مزیدار نیغ اوصفا دین باندې ته ئې. دا

---

[۱] ترمذی کتاب فضائل القرآن باب ماجاء فی فضل یسین ۲۸۸۷دارمی:۲/۴۵۶،
[۲] مسندابی یعلی:۶۲۲۴.
[۳] احمد:۵/۲۶.
[۴] البزار کشف الاستار:۲۳۰۵.

صراط مستقيم د رب رحمن اورحيم دې. دادين هم د هغه نازل کړې شوېدې. کوم چه د عزتونووالا او په
مؤمنانوباندې خاص مهرباني کونکې دې.
لکه چه ارشاددې ﴿وَاِنَّكَ لَتَهْدِيْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ﴾(١)ته يقينًا دنيغې لارې خودنه کوې چه دهغه الله ﷻ
نيغه لارده چه دزمکې اوآسمان مالك دې اودچاطرف ته چه د ټولوکارونوانجام دې دې د پاره چه نه
عرب اوويروې د چامشران هم چه نه دي هوښيارکړې شوی اوهغه غافل دی. د هغوی ځان له ذکر په د
ېوجه نه دې چه نورد دې تنبيه نه جدا دی. لکه څنګه چه د بعضې کسانو په ذکر سره د عامو نفی نه
کيږی. دحضوراکرم ﷺ بعثت عام وود ټولې دنياطرف ته. د دې دلائل په وضاحت سره اوپه تفصيل سره
آيت ﴿ قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۖ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ النَّبِيِّ
الْاُمِّيِّ الَّذِيْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَكَلِمٰتِهٖ وَاتَّبِعُوْهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ﴾(٢)په تفسيرکښې بيان شوی دی.په اکثرو خلقو باندې دالله
ﷻ د عذابونوقول ثابت شوې دې. د هغوی خوايمان نه نصيب کيږی اوهغوی به ستا تکذيب کوی.

اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ اَغْلٰلًا فَهِيَ اِلَى الْاَذْقَانِ فَهُمْ
بيشکه اچولي دی مونږه | په څټونو ددوئ کښې | پټې | پس هغه | دزنو پورې(رسيدلی دی) | پس دوئ
مونږ ددوئ څټونو ته داسې داسې طوقونه اچولی دی| چې تر زنو پورې ئې راختلی دی| په دې
مُّقْمَحُوْنَ (٨) وَجَعَلْنَا مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ سَدًّا وَّمِنْ خَلْفِهِمْ
اوچت کړې شوی دی | او جوړ کړې دې مونږه | مخکښې ددوئ نه | ديوال | او روستو ددوئ نه |
وجه ددوئ سرونه بره طرفته اوچت پاتې شوی دی|او مونږ يو ديوال ددوئ مخې طرفته اودرولې دې
سَدًّا فَاَغْشَيْنٰهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُوْنَ (٩) وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ
ديوال | پس پټ کړی دی مونږه دوئ | پس دوئ | هيڅ نۀ وينی | او يو شان ده | په حق ددوئ کښی
او بل ديوال ددوئ شا طرف ته دی|بيا دبره نه موپټ کړی دی|نو(وړاندې روستو) هيڅ نه وينی | اوددوئ پحقله
ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ (١٠) اِنَّمَا تُنْذِرُ مَنِ
که يروې تۀ دوئ | او که نۀ يروې تۀ دوئ | دوئ ايمان نۀ راوړی | بيشکه تۀ يرولې شې | هغه څوک
دواړه خبرې برابردی| که ته ئې ويروې او که نه ئې ويروې |خودوئ ايمان نه راوړی |(ائې نبی)ته خو بس
اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ ۚ فَبَشِّرْهُ
چې پيروی کوی | دنصيحت | او يريږی | درحمان نه | بې ليدو | پس زيرې ورکړه هغه ته
هغه څوک ويروې اچې نصيحت پسې روانيږی | او درحم کوونکی الله ﷻ نه بې ليدو کتو ويره کوی
بِمَغْفِرَةٍ وَّاَجْرٍ كَرِيْمٍ (١١) اِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتٰى وَنَكْتُبُ
په بښنې سره | او په اجر عزتمند سره | بيشکه مونږه | ژوندی کوؤ مړی | او ليکو مونږه |
نوداسې سړو ته د بښنې او ښه اجر زيرې ورکړه| مونږ بۀ ټول مړی بيا راژوندی کوؤ|او هغه ټول عملونه

(١) ٤٢/الشوری:٥٢.
(٢) ٧/الاعراف:١٥٨.

| | | |
|---|---|---|
| مَا قَدَّمُوْا | وَاٰثَارَهُمْ ۚ وَكُلَّ شَيْءٍ | اَحْصَيْنٰهُ |
| هغه چې مخکښې ليږلې دي دوئ او روستو عملونه ددوئ او هر څيز | | اشمارلي يعنې درج كړي دي مونږه |
| ليكو كوم چې دوئ دخان نه وړاندې ليږې او كوم چې روستو شاته پاتې كيږي او مونږ هر يو څيز په | | |
| فِيْٓ اِمَامٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۲﴾ | | |
| په كتاب واضحه كښې | | |
| ښكاره كتاب كښې محفوظ ساتلي دي | | |

**قوله تعالی:- اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ**

**دكافرانو ته منلو تذكره اود هغوی انجام:-** الله ﷻ فرمانی چه د دې بدنصيبو هدايت ته رسيدل ډير گران بلكه محال دی.دوی خود هغه خلقو په شان دی د كومولاسونه چه سټ پوري اوتړې اود هغوی سر پورته خيژی. د سټ ذكركولوسره ئی د لاس ذكرپريخودو. خومراد تري هم دا دې چه سټ يوخای كولو سره لاسونه تړلې شوی دی اوسرونه ئی اوچت دی. كيږی داسې چه په ويناكښې د يوڅيزذكركولوسره دويم څيز هم دهغې نه په پوهه كښې راځی اودهغې ذكرپريخودې شی. دعربوشاعرانوپه شعرونوكښې هم دا خبره موجودده. "غل" وائی دواړه لاسونه دسټ پورې رسولوسره سټ سره يوځای تړلوته. په دې وجه ئی دسټ ذكر اوكړو اود لاسونوذكر ئی پريخودو مطلب دا دې چه مونږ دهغوی لاسونه دهغوی سټونوسره تړلې دی.ځكه چه هغوی چرته دخيركارته لاس نه شی وړاندې كولې.دهغوی سرونه اوچت دی اود هغوی لاسونه دهغوی په مخ باندې دی. هغوی د هرې ښيگړې نه بې وسه دی. دسټونو د دې طوق سره دهغوی وړاندې ديوال دې يعنی دحق نه بنديزدې روستوهم ديوال دې يعنی د حق نه بنديزدې په دې وجه به ترددكښې پراته دی حق ته كتلې هم نه شی نه د حق طرف ته لار بيامومی اونه دحق نه فائده اوچتوی.دابن عباس ﷺ په قراءت كښې ﴿فَاَغْشَيْنٰهُمْ﴾ عين سره دې دايوقسم دسترگې بيماری ده چه انسان نابيناكوی([1]) نوداسلام ايمان اودهغوی په مينځ كښې د خلورواړو طرفونه بنديز دې لكه چه بل آيت كښې دی په چاچه ستاد رب كلمه حق شوې ده هغوی خوايمان نه راوړی.كه ته هغوی ته ټول آياتونه هم اوښائې تردې چه دردناك عذابونه پخپله اووينی. خوك چه الله ﷻ منع كړی هغوی د كوم خائ نه دا منع كول اخواكولې شی.

**قوله تعالی:- سَدًّا**

**ددې مبارك شان نزول** .يوځل ابوجهل ملعون اووئيل كه ما محمد ﷺ اوليدو نوداسې به اوكړم اوهغه شان به اوكړم.په دې باندې داآياتونه نازل شو.خلقو به هغه ته وئيل چه دادې محمد ﷺ خوهغه ته ښكاريدونه اوتپوس به ئی كولو چه كوم خائ دې؟ كوم خائ دې؟([2])يوځل هم دې ملعون په يوه گڼه كښې وئيلې وو چه گورنې دې وائی كه تاسو دهغه تابعداری اوكړه نوتاسو به بادشاه جوړشئ.اود مرگ نه پس به تاسوجنت ته لاړشئ اوكه تاسو ددې خلاف اوكړو نو هم دلته به د ذلت په مرگ مردار شئ اوهلته به په عذابونوكښې راگيرشئ. نن دې راشی. هم هغه وخت رسول الله ﷺ تشريف راوړو. د هغه په موټی كښې خاوره وه.

---

[1]) الطبری: ۴۹۶/۲۰.

[2]) الطبری: ۴۹۵/۲۰.

حضورﷺ د سورت یٰس د شروع نه ﴿لَا یُبۡصِرُوۡنَ﴾ پورې لوستلو راروان وو الله ﷻ هغه ټول رانده کړل او حضورﷺ د هغوی په سرونوباندې خاوره واچوله اوتیرشو. ددې بدبختانو ډلې په ډلې د حضوراکرمﷺ دکورنه چاپیره گیره اچولې وه.دهغې ډیرروستوپس یوصاحب د کورنه راووتلو.دهغوی نه ئې تپوس اوکړوچه تاسو دلته څنګه گیره اچولې ده؟ هغوی ونیل د محمدﷺ په انتظار یونن به ئې ژوندې نه پریږدو. هغه ونیل واه واه هغه خو لاړه اوستاسو په سرونونې خاورې واچولې اووتلو. که یقین مو نه وی نوخپل سرونه اوځنډئې اوس چه کوم یوهم سر ځنډی نو خاوره ترې راوځي. دحضوراکرمﷺ په وړاندې چه کله د ابوجهل داخبره اوکړې شوه نوحضورﷺ اوفرمائیل چه هغه ټیك ونیلی په حقیقت کښې زماکامیابی د هغوی د دواړو جهانود عزت ذریعه ده اوزما نافرمانی دهغوی د پاره د ذلت ذریعه ده او هم داسې به وی. په دې باندې د الله ﷻ مهرلګیدلې دې. دوی د نیکې خبرې اثرنه اخلی. په سورت بقره کښې هم ددې مضمون یوداسې آیت تیرشوې دې.یوبل آیت کښې دی﴿اِنَّ الَّذِیۡنَ حَقَّتۡ عَلَیۡهِمۡ کَلِمَتُ رَبِّكَ لَا یُؤۡمِنُوۡنَ﴾([1])یعنی په چاچه د عذابّ کلمه ثابته شوه هغوی ته ایمان نه نصیب کیږی سره د دې که نه هغوی ته ټولې نښې ښکاره کړې تردې چه په خپلو سترګو د الله ﷻ عذاب اووینی.

**قوله تعالی:-**﴿اِنَّمَا تُنۡذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّکۡرَ﴾

**د نبی کریم ﷺ بیان په مؤمن اثر کوی په کافر نه کوی:-**اوستانصیحت په هغوی باندې اثرکولې شی څوك چه نیکې خبرې تابعداری کونکی دی د قرآن پاك منونکی دی. بغیرد کتلودالله ﷻ نه ویریږی اوپه داسې ځائ کښې هم د الله ﷻ ویره لری کوم ځائ چه بل څوك کتونکې نه وی. هغوی ته معلومه ده چه الله ﷻ زمونږ په حال باندې خبردې اوزمونږ کارونوته ګوری.داسې خلقوته خودګناهونود معافئې عظیم اوجمیل اجر ورکولو زیرې وراورسوه. لکه چه بل آیت کښې دی کوم خلق چه په پټ ځائ کښې هم د الله ﷻ ویره لری د هغوی د پاره مغفرت اولوئ ثواب دې. هم مونږ یو چه مړی به سوزوو. مونږ د قیامت په ورځ هغوی له نوې ژوندورکولوباندې قادر یو. اوپه دې کښې دی چه مړه زړونه ژوندی کولوباندې هم الله ﷻ قادر دې. هغه ګمراه شوی هم په نیغه لار اچوی لکه بل مقام کښې د مړو زړونوذکرکولوسره قرآن حکیم فرمانی﴿اِعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ یُحۡیِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَا ؕ قَدۡ بَیَّنَّا لَکُمُ الۡاٰیٰتِ لَعَلَّکُمۡ تَعۡقِلُوۡنَ﴾ ([2]) پوهه شئی چه الله ﷻ زمکه دهغې دمړکیدونه پس راژوندئی کوی.مونږ ستاسودپوهې دپاره ډیر څه بیان کړل اومونږ د هغوی وړاندې لیګلې شوی اعمال لیکو اود هغې آثارهم. یعنی کوم ئې چه د ځان نه پس پریخې راغلی.که خیرئې باقی پریخې وی نونیکه بدله ګنی سزا به خوری. دحضوراکرم ﷺ فرمان دې کوم سړې چه په اسلام کښې نیکه طریقه روانه کړی اوهغه څوك هم کوی نو ټولوته به بدله ملاویږی اودهغوی بدله به هم نه کمیږی.اوکوم سړې چه یوه بده طریقه روانه کړی نود هغې بوج به هم په هغه وی اودهغوی بوج هم څوك چه د هغې نه پس په دې عمل کونکی وی خودهغه بوج به نه شی کمولې. ([3])

په یواوږدحدیث کښې دې د قبیله مضر د ځادر اچونکوخلقو واقعه هم ده. اوپه آخره کښې ﴿وَنَکۡتُبُ مَا قَدَّمُوۡا﴾ لوستلوذکر هم دې.د صحیح مسلم شریف په یوبل حدیث کښې دی کله چه انسان مړشی نو د هغه ټول عملونه کټ شی خودرې عملونه علم د کوم نه چه نفع حاصله کړې شی نیك اولادچه دهغه د پاره دعااوکړی اوهغه صدقه جاریه چه دهغه نه پس هم باقی وی([4])دمجاهد رحمه الله نه ددې آیت په تفسیر کښې روایت دې ګمراه خلق چه کومه ګمراهی پریږدی د سعیدبن جبیر رحمه الله نه روایت دې هره هغه

---

[1]) ۱۰/یونس:۹٦-۹۷.
[2]) ۵۷/الحدید:۱۷.
[3]) صحیح مسلم کتاب الزکاة باب الحث علی الصدقة ولوبشق تمرة....:۱۰۱۷. (مسلم)
[4]) صحیح مسلم کتاب الوصیة باب ما یلحق الانسان من الثواب بعدوفاته:۱٦۳۱.

نيكي اوبدى كومه چه هغه جارى كړې وى اودخپل ځان نه پس نى پريږدى. بغوى رحمه الله هم داقول خوښوى.ددې جملې په تفسيركښې دويم قول دادې چه د آثار نه مراد د قدم نښې دى كوم چه د اطاعت يا معصيت يعنې ګناه طرف ته اوچت شى. (١)
حضرت قتاده رحمه الله فرمائى اې بنيادمه كه چرې الله ﷻ ستاد يوعمل نه غافل شوې وو نوستاد قدم دنښونه به غافل شوې ووكوم چه هوا ورانوى. خوالله تعالى تبارك وتعالى د دې نه اوستاد يوعمل نه غافل نه دې. ستا څومره قدمونه چه دهغه په اطاعت كښې اوچتيږى ټول هغه سره ليكلې شوى دى. په تاسوكښې چه دچا نه كيدې شى هغه دې د الله ﷻ دفرمانبردارئى طرف ته قدم اوچتوى. هم د دې معنى نورهم ډير احاديث دى. اولنې حديث په مسنداحمدكښې دې حضرت جابربن عبدالله ﷺ فرمائى مسجدنبوى ﷺ سره خواوشا څه كورونه خالى شونودقبيله بنوسلمه خلقو اراده اوكړه چه هغوى د خپلې محلې نه راپاسى اودلته نيزدې كورونوكښې جمات سره آبادشى.كله چه د دې خبر رسول الله ﷺ ته اوشو نووئى فرمائيل ماته داخبره معلومه شوې ده دا ټيك ده؟هغوى جواب وركړو او.حضوراكرم ﷺ دوه خل اوفرمائيل اې بنو سلمه په خپلو كورونوكښې اوسيږئى ستاسو قدمونه الله ﷻ سره ليكلې كيږى. (٢)
**دويم حديث:-** د ابن ابى حاتم په روايت كښې دى. هم د دې باره كښې داآيت نازل شوې اوهم دې قبيلې خپله اراده بدله كړه. د بزار هم په دې روايت كښې دى بنوسلمه د خپلو كورونود جمات نه د لريوالى شكايت حضوراكرم ﷺ ته اوكړو. په دې باندې دا آيت نازل شو اوبياهغوى هم هلته اوسيدل(٣)خوپه دې كښې غرابت دې ځكه چه په دې كښې د دې آيت په دې باره كښې نازل بيان شوى دى اوداپوره سورت مكى دې. والله اعلم.
**دريم حديث:-** ابن جريركښې د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه د كومو بعضې انصارو د كورنه مسجد نبوى لرې وو هغوى جمات سره نيزدې كورونوته راتلل غوښتل. په دې باندې دا آيت نازل شو نوهغوى وئيل چه اوس به مونږ داكورونه نه پريږدو. (٤) داحديث موقوف دې.
**څلورم حديث:-** مسنداحمدكښې دى چه يومدنى صحابى ﷺ په مدينه طيبه كښې وفات اوشو نو حضور ﷺ دهغه د جنازې مونځ اوكړو وئى فرمائيل كاش چه دې د خپل وطن نه چرته بل ځائ وفات شوې وې.چاوئيل دا ولې؟ وئى فرمائيل چه كله يومسلمان په غيروطن كښې وفات شى نودهغه د وطن نه واخله د هغه ځائ پورې زمكه ناپ كوى اودومره ځائ ورته جنت كښې ملاويږى. (٥)
ابن جريركښې دحضرت ثابت رحمه الله نه روايت دې زه حضرت انس ﷺ سره دمانځه دپاره جمات ته لاړم. زه زرزربه غټو غټوقدمونوباندې روان ووم نوهغوى زمالاس اونيولوځان سره نى په مزه مزه په ورو ورو قدمونوسره بوتلم كله چه مونږ د مانځه نه فارغ شونوهغوى اوفرمائيل زه حضرت زيدبن ثابت ﷺ سره جمات ته روان ووم اوپه تيزو قدمونو روان ووم نوهغه ماته اوفرمائيل اې انس آياتاته معلومه نه ده چه دا د قدمونونښې ليكلې كيږى. (٦)د دې قول نه د ړومبى قول نور هم تائيد كيږى ځكه چه كله د قدم نښې ليكلې كيږى نوخوره كړې شوې نيكى اوبدى به ولې نه ليكلې كيږى. والله اعلم.
**قوله تعالى:-** فِيٓ اِمَامٍ مُّبِيْنٍ۝

---
(١) الطبرى: ٢٠/٤٩٧.
(٢) صحيح مسلم كتاب المساجد باب فضل كثرة الخطالى المساجد: ٦٦٥، احمد: ٣/٣٣٢،ابن حبان: ٢٠٤٢.
(٣) ترمذى كتاب تفسيرالقرآن باب ومن سورة يس: ٣٢٢٦ حاكم: ٢/٤٢٨.
(٤) ابن جرير الطبرى.
(٥) نسائى كتاب الجنائزباب الموت بغيرمولده: ١٨٣٣ وسنده حسن، ابن ماجه: ١٦١٤، احمد: ٢/١٧٧.
(٦) الطبرى: ٢٠/٤٩٨.

**د امام مبین مطلب:-** ټول کائنات او ټول موجودات په مضبوط کتاب لوح محفوظ کښې لیکلي دی چه ام الکتاب دی(١) هم دا تفسیرد بزرګانونه ایت ﴿يَوْمَ نَدْعُوا كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ ۖ فَمَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَأُولَٰئِكَ يَقْرَءُونَ كِتَابَهُمْ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا﴾(٢) په تفسیر کښې هم نقل دي. چه دهغوی عمل نامه کوم کښې چه خیر او شر لیکلي دی لکه د قرآن پاك آیت ﴿وَوُضِعَ الْكِتَابُ فَتَرَى الْمُجْرِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا فِيهِ وَيَقُولُونَ يَا وَيْلَتَنَا مَالِ هَٰذَا الْكِتَابِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً إِلَّا أَحْصَاهَا ۚ وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا ۗ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا﴾(٣) او آیت ﴿وَوُضِعَ الْكِتَابُ وَجِيءَ بِالنَّبِيِّينَ وَالشُّهَدَاءِ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ﴾(٤) کښې دی.

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ إِذْ

او بیان کړه | دوئ ته | یو مثال | دخلقو دکلي | کله چي |

(ائي پیغمبره) دوئ ته دیو کلي د خلقو قصه واوروه،|

جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ ۝ إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ

راغلل هغه کلي ته | رسولان | کله چي | اولیږل مونږه | هغوئ ته | دوه رسولان

کله چي هغه کلي ته پیغمبران ورغلل|کله چي مونږ هغوئ ته دوه کسان اولیږل

فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا

پس هغوئ دروغ اوګڼل دواړه | پس قوي کړل مونږه | په دریم سره | نو اووئیل هغوئ | بیشکه مونږه

نو هغوئ هغه دواړه دروغژن اوګڼل|. نو مونږ دیو دریم کس په ذریعه دغه دواړه مضبوط کړل|نو دي

إِلَيْكُمْ مُرْسَلُونَ ۝ قَالُوا مَا أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ

تاسو ته | رالیږلي شوي رسولان یو | اووئیل هغوئ | چي نه يئ تاسو | مګر | انسانان يئ

پیغمبرانو اووئیل|چي بیشکه مونږ ستاسو طرفته رالیږلي شوي یو| هغه خلقو جواب ورکړو

مِثْلُنَا وَمَا أَنْزَلَ الرَّحْمَٰنُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ ۝

پشان زمونږه | اونه دي نازل کړي | رحمان | هیڅ څیز | نه يئ تاسو | مګر | دروغ وايئ

چي تاسو خو زمونږ په شان انسانان يئ | او الله ﷻ هیڅ نه دی نازل کړي| دا خو تاسو دروغ وائي

قَالُوا رَبُّنَا يَعْلَمُ إِنَّا إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ ۝

اووئیل رسولانو | رب زمونږه | پوهیږي | چي مونږه | تاسو ته | خامخا رالیږلي شوي رسولان یو

هغه نبیانو اووئیل چي زمونږ رب ته معلومه ده| چي مونږ خاص هم تاسو ته را لیږلي شوي یو

وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ۝

او نشته په مونږ باندي | مګر رسونه ښکاره |

او زمونږ نوره ذمه واري نشته |خو (تاسوته) ښکاره حکم رسول دی|

(١) الطبری: ٢٠/٤٩٩.
(٢) ١٧/بنی اسرائیل: ٧١.
(٣) ١٨/الکهف: ٤٩.
(٤) ٣٩/الزمر: ٦٩.

**قوله تعالى:-** وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلًا أَصْحٰبَ الْقَرْيَةِ ۘ

**ذ يوكلي والواقعه:-** الله ﷻ خپل نبي ﷺ ته حكم فرمائي چه تاسو خپل قوم ته د وړاندينوخلقو قصه بيان كړئي چا چه د دوى نه مخكې خپل رسولان دغه شان دروغ ګڼړلې وو. دا واقعه د انطاكيه ښارده د هغه ځائ د بادشاه نوم انطيخس وو. د هغه د پلار اونيكه هم دا نوم وو دا ټول بت پرست وو. هغوى له د الله ﷻ درې پيغمبران راغلې ووصادق مصدوق اوشلوم دالله تعالى درود اوسلام دې په هغوى وى. خودې بدنصيبو ټول دروغ اوګنړل([1]) ډير زر دا بيان هم راروان دې چه ډيرو مشرانو دا اونه منل چه دا واقعه د انطاكيه وى.اول دوى له دوه پيغمبران راغله دوى اونه منل. ددې دوو په تائيدكښې بيادريم پيغمبر راغلو د اولنو دوورسولانونومونه شمعون اويوحنا وو اود دريم رسول نوم بولص وو. دې ټولو اووئيل چه مونږ دالله ﷻ ليګلې شوى يوچاچه تاسو پيداكړى ئې.هغه زما په ذريعه باندې تاسو ته حكم اوكړو چه تاسو دهغه نه بغيرد بل چا عبادت مه كوئي.دحضرت قتاده بن دعامه رحمه الله خيال دې چه دا درېواړه بزرګان دحضرت مسيح عليه السلام راليګلې شوى وو.

**قوله تعالى:-** قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۙ

**د قوم د منلو نه انكار او اعتراض او د هغوئ جواب:-** د كلى دې خلقو جواب وركړوچه تاسو خو زمونږ په شان انسانان ئې بياتاسو ته ولې د الله ﷻ وحى راغله اوزمونږ طرف ته رانغله. اوكه تاسو رسولان وئى نويكار وه چه تاسو فرښتې وئې. اكثرو كافرانو هم دا شبه د خپلې خپلې زمانې د پيغمبرانو په وړاندې پيش كړې وه. لكه چه د الله سبحانه وتعالى ارشاد دې ﴿ذٰلِكَ بِاَنَّهٗ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَكَفَرُوْا فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ ۭ اِنَّهٗ قَوِيٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ﴾([2])يعنى خلقوله رسولان راغله او هغوى جواب ئې وركړوچه انسانان زمونږ د هدايت دپاره راغله.يو بل آيت كښې دى ﴿قَالُوْٓا اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۭ تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَصُدُّوْنَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَاۗؤُنَا فَاْتُوْنَا بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ﴾ ([3]) يعنى تاسو خوزمونږ په شان انسانان ئې. ستاسوخوښه صرف دا ده چه مونږ د خپلوپلارانو نيكونود دمعبودانونه منع كړئي ځښې چرته غلبه ښكاره راوړئي.

بل ځائ ارشاد دې ﴿وَلَىِٕنْ اَطَعْتُمْ بَشَرًا مِّثْلَكُمْ اِنَّكُمْ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ﴾([4])يعنى كافرانواووئيل كه تا د خپل ځان په شان د انسانانوتابعدارى اوكړه نوتاسويقينًا په ډيرلوئ نقصان كښې پريوتلئ.د دې نه هم په ډير وضاحت سره آيت ﴿وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَاۗءَهُمُ الْهُدٰى وَيَسْتَغْفِرُوْا رَبَّهُمْ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا﴾ ([5]) كښې د دې بيان دې. هم دا دې خلقو دې درېواړو نبيانوته اووئيل چه تاسو خو زمونږ په شان انسانان ئې اوبه حقيقت كښې الله ﷻ هيڅ هم نه دى نازل كړى تاسو هسې غلط خبرې كوئي. پيغمبرانوجواب وركړوالله تعالى ته ښه معلومه ده چه مونږ دهغه رښتونې رسولان يو كه مونږ دروغژن وو نوپه الله ﷻ باندې د دروغو تړلو سزا به مونږ ته الله ﷻ راكوله. خوتاسو به ګورئي چه هغه به زمونږ امداد اوكړى مونږ ته به عزت راكړى هغه وخت به تاسو ته پخپله ښكاره شي چه څوك د اعتباراوانجام په توګه ښه پاتې شو. لكه چه بل ځائ ارشاددې ﴿ قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا ۚ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا بِاللّٰهِ ۙ اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ﴾([6])زمونږ او ستاسو په مينځ كښې د الله ﷻ ګواهى كافى ده هغه خود آسمان اوزمكې غيب پيژنې. په باطل باندې ايمان ساتل اود الله ﷻ نه كفر كونكى په نقصان كښې

---

[1]) الطبرى: ٢٠/ ٥٠٠.
[2]) ٤٠/المؤمن: ٢٢.
[3]) ١٤/ابراهيم: ١٠.
[4]) ٤٠/المؤمنون: ٣٤.
[5]) ١٧/بنى اسرائيل: ٩٤.
[6]) ٢٩/العنكبوت: ٥٢.

دی. واورنی زمونږ په ذمه صرف تبلیغ کول دی که اومومنل نو هم ستاسو خپله فائده ده اوکه نه منئ نو بیا خپله به پښیمانه شئ. زمونږ هیڅ هم نه شئ کولې. صبا به د خپلو کړو مزه څکئ.

قَالُوٓا اِنَّا تَطَيَّرْنَا

اووئیل دکلی خلقو | بیشکه مونږه بدفالي نیسو

هغه خلقو اووئیل چې مونږ خو

بِكُمْ ۚ لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهُوا لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُمْ

په تاسو | که چرې منع نه شوئ تاسوانو خامخا به مونږ سنګسار کړو تاسوااوخامخا به اورسي تاسو ته

تاسو سپیره ګڼړوا که تاسو (ددې تبلیغ نه) منع نه شوئ انو مونږ به موسنګسار کړوا اوزمونږ د طرفنه به

مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۞۱۸ قَالُوْا طَآئِرُكُمْ مَّعَكُمْ ؕ

زمونږ نه | عذاب دردناك | اووئیل رسولانو | بدفالي ستاسو | خو ستاسو سره ده

درته ډیر دردناک عذاب دراورسي اپیغمبرانو اووئیل چې ستاسو سپیره توب پخپله تاسو پورې انښتي دي

اَئِنْ ذُكِّرْتُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ۞۱۹

ایا که نصیحت اوشی تاسو ته (نو دا بدفالي ده) | بلکه تاسو | قوم یئ دحدنه اوړیدونکی

ایا که تاسو ته نصیحت ا وکړې شی | (نو دانحوست دې؟) | نه بلکه تاسو د حد نه تیر شوی خلق یئ

وَجَآءَ مِنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ رَجُلٌ يَّسْعٰى قَالَ يٰقَوْمِ

او راغي | دلرې طرفه دهغه ښار نه | یو سړې | چې منډې ئې راوهلې | اووئیل هغه | اے قومه زما

اودغه ښار د بلې غاړې نه یو سړې په منډه منډه راغلو او ورته ئې اووئیل چې ائې زما قومه!

اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِيْنَ ۞۲۰ اتَّبِعُوْا مَنْ لَّا يَسْـَٔلُكُمْ اَجْرًا

پیروی اوکړی | درسولانو | پیروئ اوکړئ | دهغه چا | چې نه غواړی ستاسو نه | څه بدله

تاسو ددې پیغمبرانو تابعداری اوکړئ | دهغه چا په لار چې تاسو نه هیڅ بدله نه غواړی

وَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ۞۲۱

او هغوئ | په نیغه لار دی |

او په سمه لار قائم ولاړ دی

**قوله تعالی:- قَالُوْٓا اِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ ۚ**

**کافرانو به د رسولانومتعلق بدګمانې کوله:-** دې کافرانو رسولانوته اووئیل ستاسو په راتلو سره مونږ ته هیڅ خیراوبرکت ملاونه شو بلکه نوربداوبدی راورسیده.تاسو نی سپیرۀ خلق. چرته چه ځئ مصیبتونه به راځی.واورئ که تاسو د خپلې دې طریقې نه منع نه شوئ اوهم دا وینامو کوله نومونږ به تاسو سنګسارکړواوسختې دردناکې سزاګانې به درکړو.رسولانو جواب ورکړو چه تاسو پخپله شیطانان ئی او ستاسو عملونه خراب دی اوهم په دې وجه په تاسو باندې مصیبتونه راځی چه څنګه کوئ هم هغه شان به درته ملاویږی.

**داسې بدفالی فرعونیانو هم کړې وه.:** هم دا خبره فرعونیانوموسی ﷺ اودهغه قوم مؤمنانوته وئیلې وه. کله چه به ورته څه راحت ملاویدو نو وئیل به ئی مونږ خوددې مستحق یواوکه چرې څه خفګان ورته.

رسيدونودموسی ﷷ اود هغه د قوم په بدگمانئ سره به ئی دا محمول کول.دکوم چه په جواب کښې الله ﷻ اوفرمائیل ﴿أَلَآ إِنَّمَا طَٰٓئِرُهُمْ عِندَ ٱللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾[1] يعنی دهغوی دمصيبتونو وجه هم دهغوی بدعملونه دی د کومې وبال چه زمونږ د طرف نه هغوی ته رسی.

**د صالح ﷷ قوم هم داسې فد فالی کړې وه:-** د صالح ﷷ قوم هم خپل نبی ته ونیلې وو اوهم دا جواب ئی ورکړې وو. پخپله نبی اخر الزمان حضرت محمد ﷺ ته هم داسې ونیلې شوی وو لکه چه دالله تعالی ارشاد دې. ﴿ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا۟ هَٰذِهِۦ مِنْ عِندِكَ ۚ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ ۖ فَمَالِ هَٰٓؤُلَآءِ ٱلْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا﴾ [2]

يعنی که دې کافرانوته څه نقصان کېږی نووائی چه دا ستاد طرف نه دی ته ورته اووايه دا ټول هرڅه د الله ﷻ د طرف نه دی. په دوی څه شوی دی چه دوی په دې خبره باندې هم ځان نه پوهه کوی بيافرمائی چه صرف په دې وجه چه مونږ تاسو ته نصيحت اوکړو ستاسو خيرخواهی مو لوکړه تاسوته مو نيغه لار اوخودله.ستاسودالله ﷻ دتوحيدطرف ته لارخودنه اوکړې شوه.تاسو ته ئی داخلاص اوعبادت طريقې اوخودلې اوتاسومونږسپیره گنړئی اومونږداسې ويروئی اومقابلې له راغلې.حقيقت دادې چه تاسو اسراف کونکی خلق ئی دالله ﷻ دحدودونافرمانئ کوئی اود حدنه تيرېږئی مونږ ته گورئی مونږ ستاسو بنيگړه غواړو.تاسو هم خپل ځان ته اوگورئی چه تاسوزمونږ نه بدی گنړئی.وائې اوښانئ داڅه د انصاف خبره ده. افسوس تاسو د انصاف د دائرې نه اووتلئی

**قوله تعالی:- وَجَآءَ مِنْ أَقْصَا ٱلْمَدِينَةِ رَجُلٌ يَسْعَىٰ**

**دحضرت حبيب ذکر:-** روايت دې چه د دې کلی خلق دومره سرکش شو چه هغوی پټ د انبياؤکرامو د قتل کولو اراده اوکړه. آخريومسلمان سړې چه د دې کلی په آخری حصه کښې اوسيدلو د چا نوم چه حبيب وو اودرسئی کار به ئی کولو وو هم بيمار اود جذام بيماری ئی وه. ډېر سخی سړې څه چه به ئی گټل د هغې نيمه حصه به ئی د الله ﷻ په لارکښې خيرات کول د زړه نه ډېر نرم وو اوفطرت ئی ډېر ښه وو.[3] دخلقو نه ځان له په يوغارکښې کيناستل اود الله ﷻ عبادت ئی کولو. هغه چه د قوم دابده اراده په څه طريقه معلومه کړه نوصبر نه شو اورامندې کړې راغلو. بعضې وائی چه بټياری وو اويوقول دې چه دا دهوبی وو. عمر بن حکم رحمه الله فرمائی چه دې موچی وو. الله ﷻ دې په هغه باندې رحم اوکړی هغه خپل قوم پوهه کول شروع کړه چه تاسو د دې رسولانوتابعداری کوئی د دوی وينا اومنئی دهغوی په لار روان شئی گورئی چه دوی خپله هيڅ فائده نه کوی دوی تاسونه د خپل رسالت د تبليغ هيڅ بدله نه غواړی. د خپلې خيرخواهئ هيڅ مزدوری تاسو نه نه غواړی. د زړه د درد د وجه نه تاسو له د الله ﷻ د توحيد دعوت درکوی. اود نيغې او رښتونې لارې خودنه درته کوی اوپخپله هم په دې لار روان دی. تاسو له خامخا د دوی په دعوت باندې لبيك وئيل پکار دی اود هغوی اطاعت کول پکاردی. خوقوم دهغه يوه هم وانوريده بلکه هغه ئی شهيد کړو. رضی الله تعالی عنه وارضاه.

﴿الحمدلله﴾ د تفسيرابن کثير دووه ويشتم سيپاره ختمه شوه.

[1] ۷/الاعراف: ۱۳۱.
[2] ٤/النساء: ۷۸.
[3] الطبری: ۲۰/٥۰٤.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا لِيَ | لَآ أَعْبُدُ | الَّذِي | فَطَرَنِي | وَإِلَيْهِ | |
| او څه شوي دي ماله | چي زۀ بندګي اونۀ کړم | دهغه الله | چي پيدا ئې کړم زۀ | او خاص هغه ته | |

او زه به ولې دهغه (رب) عبادت نه کوم| چې زه ئې پيدا کړې يم| اوتاسو ټول به هغه ته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تُرْجَعُونَ﴿۲۲﴾ | ءَأَتَّخِذُ | مِن دُونِهِ | آلِهَةً | إِن يُرِدْنِ | الرَّحْمَٰنُ | بِضُرٍّ |
| په تاسو واپس کيږئ | آيا زۀ اونيسم | بې دالله نه | نور خدايان | که اراده اوکړي | رحمان | دضرر |

واپس کيږئ| آيا زه د الله ﷻ نه سوا د نورو مبعودانو عبادت اوکړم| که رحمان (الله ﷻ) راته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَّا تُغْنِ | عَنِّي | شَفَاعَتُهُمْ | شَيْئًا | وَلَا يُنقِذُونِ﴿۲۳﴾ | إِنِّي |
| نو دفعه به نۀ کړي | زمانه | سفارش دهغوئ | هيڅ څيز | اونۀ به خلاص کړي ماله | بيشکه زۀ به |

څه ضرر راسول غواړي| نو د هغوئ سفارش راته هيڅ فائده نشي رسولې| اونه مې ترې خلاصولې شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِذًا | لَّفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴿۲۴﴾ | إِنِّي آمَنتُ | بِرَبِّكُمْ | |
| بيا په دغه وخت کښې | خامخا په ګمراهئ ښکاره کښې يم | بيشکه ما ايمان راوړو | په رب ستاسو | |

که زۀ داسې اوکړم| نو په هغه وخت به په ښکاره ګمراهئ کښې شم| بيشکه ما ستاسو په رب ايمان راوړې دی

فَاسْمَعُونِ﴿۲۵﴾

پس واورئ زمانه |

نوزما خبره واورئ |

**قوله تعالى: وَمَا لِيَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي**

**د حبيب د قوم په وړاندې د توحيد بيان :-** هغه نيك بخته سړی چه کله د الله تعالى د رسولانو تکذيب ترديد اوسپکاوې اوکتلو نوپه منډه راغلو اوچاچه خپل قوم ته د نبيانو د تابعدارئى رغبت ورکړې وو هغه اوس خپل عمل اوعقيده دهغوی په وړاندې پيش کوی اوهغوی دحقيقت نه خبروی اودايمان دعوت ورکوی نووائی چه زه خوصرف دخپل خالق اومالك الله تعالى چه وحده لاشريك له دې عبادت کوم. خکه چه صرف هم هغه زه پيدا کړې يم نوزه به د هغه عبادت ولې نه کوم؟ بياخوداسې نه ده چه مونږ د هغه د قدرت نه اوځو اويااوس هغه سره زمونږ څه تعلق پاتې نه شو؟ نه بلکه ټول په ټوله به بيا د هغه مخې ته راجمع کيدونکي يو. هغه وخت به هغه د هرې نيکئى اوبدئ بدله ورکوی. دا څومره د شرم خبره ده چه زه هغه خالق او قادرپريږدم او د نورو عبادت اوکړم چه نه خوداسې څه طاقت لری چه د الله تعالى د طرف نه څه مصيبت راشى اوهغه رانه اخوا کړی نه دا د هغه د وينا اوريدو په وجه ماته څه بدی رارسولې شي. که الله تعالى ماته څه تکليف رارسول غواړی نوهغه لرې کولې نه شی منع کولې نه شی نه ماد هغې نه بچ کولې شی. که زه د داسې کمزورو عبادت کول شروع کړم نوزما نه بل ګمراه او دهوکه خوړلې بل څوك کيدې شي؟ بيا خو به نه يوازې په ما بلکه د دنياپه هريونيك انسان به زماګمراهی ښکاره شی. زماد قوم خلقو د کوم حقيقی معبود اوپروردګارنه چه تاسو منکرشوی ئې واورئ زه د هغه په ذات باندې ايمان لرم.

اوددې آيت دامعنى هم کيدې شی چه هغه د الله تعالى والا نيك سړی د خپل قوم نه مخ واړولود الله تعالى هغه رسولانوته ئې اووئيل چه د الله تعالى پيغمبرانو تاسو زما د ايمان ګواه اوسيږئ ما د الله تعالى په ذات باندې ايمان راوړو چاچه تاسو په حقه سره رسولان جوړکړی راليګلی ئې. نولکه دې په



خپل ایمان راوړلو باندې د الله تعالى رسولان ګواه جوړول غواړي. داقول په نسبت د وړاندینی قول نه نور هم زیات واضحه دې. والله اعلم.
حضرت ابن عباس ﷺ وغیره فرمائی چه دې بزرګ هم دومره وینا کړې وه چه ټول کافران پرې راغونډ شو او وئی وهلو. څوك وو چه دا ئی بچ کولو؟ بیائی په کاڼو ویشتلوسره هم هغه شهید کړو.(۱) رضی الله تعالى عنه وارضاه. دې د الله تعالى ربښتونی بنده اود الله تعالى ولی الله کاڼړی خوړل ولې په ژبه باندې هم داوئیل اې الله زما قوم ته هدایت اوکړې دوی نه پوهیږي. (۲)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قِيلَ | ادْخُلِ الْجَنَّةَ ۖ | قَالَ | يٰلَيْتَ | قَوْمِي |
| اووئیلې شو (هغه ته) | چې ننوزه جنت ته | اووئیل هغه | افسوس | چې قوم زما |
| هغه ته اووئیلې شو | چې ته جنت ته داخل شه | هغه اووئیل | ....... | انې افسوس چې |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾ | بِمَا | غَفَرَ لِي | رَبِّي | وَجَعَلَنِي | مِنَ الْمُكْرَمِينَ ﴿٢٧﴾ |
| پوهیدلې | په هغه | چې اوبخښلم زه | رب زما | اووې ګرزولم زه | دعزتمند خلقو نه |
| زماقوم ته داخبره معلومه وې | چې زه خپل رب اوبخښلم | | | او په عزتمند و خلقو کښې ئې شامل کړم | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا أَنْزَلْنَا | عَلَىٰ قَوْمِهِ | مِنْ بَعْدِهِ | مِنْ جُنْدٍ | مِنَ السَّمَاءِ | |
| او نازل نه کړو مونږه | په قوم دهغه باندې | روستو دهغه نه | څه لښکر | دآسمان نه | |
| اومونږ دهغه نه پس دهغه په قوم باندې د(عذاب دپاره) دآسمان نه څه لښکرې نه وې رالیږلې | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا كُنَّا | مُنْزِلِينَ ﴿٢٨﴾ | إِنْ كَانَتْ | إِلَّا صَيْحَةً | وَاحِدَةً | فَإِذَا |
| اونه وو مونږه | الیږونکی دلښکرو | نه وو (هغه عذاب) | مګر وه چغه | یوه | پس په هغه دم |
| اونه لښکر راکوزولو ته زمونږ حاجت وو | هغه (عذاب) خوبس یوه چغه وه | نو ټول | | | |

| | |
|---|---|
| هُمْ | خَامِدُونَ ﴿٢٩﴾ |
| وږ هغوئ | یخ پخ پراته |
| په هم هغه وخت ساړه شول | |

**قوله تعالى:: قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ**
**د مومن د پاره د جنت زیرې** :- حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چه دې کافرانوهغه کامل مومن ډیر خراب اووهلوهغه ئې راګذارکړواودهغه په خیټه کیناستل اوپه پښوباندې چخړې کړو تردې چه د هغه کولمې روستو نه راووتلې. هم هغه وخت هغه ته د الله تعالى د طرف نه د جنت زیرې ملاوشو. هغه الله تعالى د دنیاد غم دردنه آزاد کړو اوپه امن او آرام سره ئې جنت ته اورسولو. د هغه په شهادت سره الله تعالى خوشحاله شو. جنت د هغه د پاره کولاوکړې شو اود داخلیدو اجازت ورکړې شو. خپل اجر او ثواب عزت اواکرام ته په کتلوسره هغه بیا اووئیل چه افسوس زما قوم دالیدلې چه زه خپل رب اوبښلم اوزمائی ډیر زیات اکرام اوکړو. (۳) په واقع کښې مومن د ټولوخیرخواه وی اوهغه دهوکه باز او بدخواه

۱) الطبری: ۲۰/۵۰۸.
۲) الطبری: ۲۰/۵۰۸.
۳) الطبری: ۲۰/۵۰۹.

نه وي. هغه د الله تعالى والا سرى په ژوند کښې هم د خپل قوم خيرخواهى اوکړه او د مرګ نه پس هم د هغوى خيرخواه وو. داهم مطلب دې چه هغه ونيل چه افسوس زما قوم ته دا معلومه شوې وې چه مالـه په څه وجه رب دابخښنه راکړه اوولې زما عزت اوکړو نولامحاله هغوى به هم د دې خيز د حاصلولو کوشش کولو په الله تعالى به نې ايمان راوړلو اود رسولانومنل به نې کول. الله تعالى دې په هغه باندې رحمت اوکړي اود هغه نه دې خوشحاله شي. ګورئ چه د قوم د هدايت څومره خواهش مندوو.

**عروه بن سعود ؓ هم دغه شان شهيد کړې شو:**: حضرت عروه بن مسعود ثقفى ؓ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض اوکړو حضور ﷺ که اجازت وی نو زه به خپل قوم له د دين د تبليغ د پاره لاړشم او هغوى نه به د اسلام دعوت ورکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل هسې نه چه هغوى تاقتل کړي. جواب نې ورکړو چه حضور ﷺ ددې خبرې خو احتمال نشته خکه چه د هغوى ماسره دومره مينه او عقيدت دې که چرې زه اوده شم نوهغوى ما راپاسوى هم نه. حضور ﷺ اوفرمائيل چه ښه ده بيا لاړشه. دې لاړو چه کله د لات اوعزى بتانوسره دې تيريدلو نو ونې ونيل اوس ستاسو تباهى راغله په دې خبره باندې ټول قبيله ثقيف غصه شوه. هغه ويناکول شروع کړه چه اې زما د قوم خلقو تاسودا بتان پريږدئ لات او عزى په اصل کښې هيڅ څيزونه نه دى. اسلام قبول کړئ نو سلامتيا به درته حاصله شي. اې زما رونړو تاسو يقين اوکړئ چه دا بتان هيڅ حقيقت نه لرى. ټوله ښيګړه په اسلام کښې ده. وغيره. اوس نې لاصرف درې خل داکلمه لوستلې وه چه يودوزخى بدنصيبه د لرې نه يوغشى اوويشتلو او د اکحل په رګ باندې اولګيدلو اوهم هغه وخت شهيدشو. حضور ﷺ له چه کله داخبر راورسيدو نوحضور ﷺ اوفرمائيل چه دې هم داسې وولکه چه دسورت ياسين والا چه ونيلې افسوس چه زما قوم زما مغفرت او عزت پيژندلې وې.(١)

**حبيب بن زيد قصه:**: حضرت کعب احبار ؒ ته چه کله د حبيب بن زيد بن عاصم ؓ ذکر اوکړې شوځوك چه د قبيله مازن بن نجار نه وو کوم چه په جنګ يمامه کښې مسيلمه کذاب شهيدکړې وو نو هغوى اوفرمائيل چه د الله تعالى قسم داحبيب ؓ هم د هغه حبيب په شان دې د کوم ذکر چه په سورت ياسين کښې دې. د هغه نه دې کذاب د رسول الله ﷺ باره کښې تپوس اوکړو نوهغه اوفرمائيل بې شکه هغه د الله تعالى رسول ﷺ دې. هغه ونيل چه زما هم ته ګواهى ورکوې چه زه هم رسول يم؟ نو حضرت حبيب ؓ اوفرمائيل چه زه نااورم. هغه ونيل د محمد ﷺ باره کښې ته څه وائې؟ هغه اوفرمائيل زه د هغه رسالت په صدق سره منم. هغه بيا سوال اوکړوزماد رسالت باره کښې څه وائې؟ جواب نې ورکړو زه نه اورم. هغه ملعون ونيل د هغه باره کښې خو اورې اوزما باره کښې بياکونړشې نه اورې. د دې نه پس به نې يوځل تپوس کولو او په دې جواب ورکولو به نې ترې د بدن يواندام پرې کولو. بيابه نې تپوس کولو اوهم داجواب به نې ورکولو اوبيابه نې ترې يواندام پرې کولو دغه شان نې د بدن يويوجوړ کټ کړو او په خپل رښتونى اسلام باندې ترآخره پورې قايم پاتې شو اوچه کوم جواب نې ود ترآخره پورې نې هم هغه ورکولو تردې چه شهيد کړې شو. (رضى الله تعالى عنه وارضاه)

**قوله‌تعالى:**: وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلٰى قَوْمِهٖ

**د هغه قوم د هلاکت بيان:**: ددې نه پس چه په هغه خلقو دالله تعالى کوم غضب نازل شواو په کوم عذاب سره هغوى غرق کړې شو د هغې ذکرکولې شي. هغوى دالله تعالى د رسولانوتکذيب کړې وو اود الله تعالى ولى نې قتل کړې ووبه د دې وجه نه په هغوى باندې د الله تعالى عذاب نازل شو اوهلاك کړې شو. د هغوى د بربادولو د پاره خو الله تعالى نه د آسمان څه لښکر راوليګلو نه نې څه خاص تيارې اوکړو نه نې په هغوى پسې فرښتې راکوزې کړې اونه د لوئ نه د لوئ کارد پاره هغه ته د دې ضرورت

(١) حاکم:٣/٦١٥–٦١٦، ابن ابى حاتم:١٢/٦١بدون الايه.

شته د هغه خو صرف حکم ورکول کافي دی نه نی د دې نه پس هغوی ته څه تنبيه اوکړه بلکه بغير د مهلت نه نی په عذاب کښې راګير کړل اوبغير د دې نه نه د هغوی څوك نوم اخستونکې پاتې شو اونه نې څوك د اوبو ورکونکی پاتې شو. د اول نه ترآخره پورې يو يونی ټول فنا کړل. حضرت جبرائيل ﷺ راغلو اود هغوی د ښار انطاکيه د دروازې چوکاټ نی اونيولو او دومره په زوره چغه نی اووهله چه د هغوی اينې نی اوشلولې زړونه نی ترې اوويستل اوروحونه ترې لاړل.

**دا درې رسولان وو د عيسى ﷺ قاصدان نه وو:** دحضرت قتاده ﷺ نه روايت دې چه هغوی له کوم درې رسولان راغلی وو دا دحضرت عيسى ﷺ راليګلې شوی قاصدان ووخوپه دې کښې لږ شان کلام دې.اول خودا چه دقصې د ظاهرنه دا معلوميږی چه هغه مستقل رسولان وو. ارشاد دې ﴿اِذْ اَرْسَلْنَآ﴾ کله چه مونږ د هغوی طرف ته دوه رسولان اوليګل کله چه هغوی دا دواړه دروغ اوګنړل نود هغوی د امداد د پاره مونږ دريم رسول اوليګلو. بيا د الله تعالى دې رسولانو اهل انطاکيه ته اووئيل ﴿اِنَّآ اِلَيْكُمْ مُّرْسَلُوْنَ﴾ يعنی مونږستاسوطرف ته رسولان يو. نوکه دا دريواړه د حضرت عيسى ﷺ د حواريانو نه د حضرت عيسى ﷺ راليګلې شوی وونوهغوی‌له داويناکول مناسب نه وو بلکه هغوی به څه داسې جمله وئيله د کوم نه چه معلوميدله چه دا د حضرت عيسى ﷺ قاصدان دی. والله اعلم.

بيادا هم يوه قرينه ده چه د انطاکيه کافران د هغې په جواب کښې وائی ﴿قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۙ وَمَآ اَنْزَلَ الرَّحْمٰنُ مِنْ شَيْءٍ ۙ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا تَكْذِبُوْنَ﴾ ([1]) تاسو خو هم زمونږ په شان انسانان نی ګورنی چه هم دا کلمه کافرانوهميشه رسولانوته وئيلې ده که هغوی د حواريانو نه وونوبياخود هغوی دعوی د رسالت مستقل نه وه. بيا دې خلقو دوی ته دا الزام ولې ورکولو؟

دويم د اهل انطاکيه طرف ته د حضرت مسيح ﷺ قاصدان تلی وو اوهغه وخت د دغه کلی خلقو په هغوی باندې ايمان راوړی وو بلکه هم دا هغه ړومبې کلې دې چه ټولو په ټولويه حضرت عيسى ﷺ باندې ايمان راوړو. د دې د پاره د نصرانيانو هغه څلور ښارونه کوم چه مقدس ګنړلې شی په هغې کښې يوداهم دې. د بيت المقدس هغوی په دې وجه قائل ووچه هغه د حضرت عيسى ﷺ ښاردې اوانطاکيه ته به نی د حرمت والا ښار خکه وئيلو چه د ټولونه اول هم د دې ځائ خلقو په حضرت عيسى ﷺ باندې ايمان راوړې وواوداسکندريه د عظمت وجه دا ده چه دلته هغوی د خپل مذهبی عهدیدارانو مقرړولو اجتماع کړې وه اود روميه د حرمت په دې وجه قائل ووچه داد شاه قسطنطين ښاروو. هم دې بادشاه د هغوی د دين امداد کړې وواوهم دلته د هغه تبرکات وو. بياچه کله هغوی قسطنطنيه ښارآباد کړونوهغه تبرکات نی د روميه نه دلته راوړل کيخودل.

سعدبن بطريق وغيره نصرانی مؤرخينو په تاريخونوکښې دا ټول واقعات ذکر کړی دی. مسلمانانانو تاريخ دانانوهم دا ليکلی دی. نومعلومه شوه د انطاکيه والا دحضرت عيسى ﷺ د قاصدانو منلې وو اودلته بيان دې چه هغوی اونه منل او په هغوی باندې د الله تعالى عذاب راغلواوهغوی تباه برباد کړل نوثابته شوه چه داواقعه بله ده. دا رسولان په مستقل رسالت باندې ماموروو اوهغوی اونه منل چه په هغې سزا کړې شو اوبې نومه اوبې نښې کړل اود سحرد چراغ په شان مړه کړې شو. والله اعلم.

دريم دا چه د انطاکيه والا خلقو قصه دحضرت عيسى ﷺ د حواريانوسره واقع شوه نودا خو قطعاً د تورات د نازليدلو نه د پس وخت ده اود حضرت ابوسعيدخدری ﷺ اوسلفو يوجماعت نه نقل دی چه د تورات د نازليدلونه پس يوکلی هم الله تعالى په خپل آسمانی عذاب باندې بالکل نه دې بربادکړې بلکه مؤمنانو ته نی د کافرانوسره د جهاد حکم ورکړو اوکافران نی په دې سره خوار اوذليل کړل لکه

[1]) ۳۶/يس:۱۵.

چه آیت ﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ مِنْ بَعْدِ مَآ اَهْلَكْنَا الْقُرُوْنَ الْاُوْلٰى بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ﴾ [۱] په تفسیر کښې دی اود دې کلی په آسمانی هلاکت باندې قرآنی آیاتونه شاهد دی د کوم نه چه عدل واضح دې نو د دې نه دا هم ثابتیږی چه داواقعه د انطاکیه نه ده لکه د بعضې سلفواقوال هم دا مطلق اود مقرر مقام نه آزاده ګڼړی. د هغوی قول دې چه دې نه مراد مشهورښاریه انطاکیه نه ده اوداهم کیدې شی چه انطاکیه نومې یوبل ښاروی اوداواقعه د هغه ځایٔ وی. ځکه چه کومه انطاکیه مشهوره ده د هغې د الله ﷻ په عذاب سره تباه اوبربادکیدل مشهورنه دی نه د نصرانیت په زمانه کښې اونه د دې نه وړاندې والله سبحانه وتعالی اعلم. داهم یادساتئی چه د طبرانی یومرفوع حدیث کښې دی چه په دنیاکښې درې کسان سبقت کولوکښې د ټولونه وړاندې وتلې دی.دحضرت موسی ﷺ سبقت کونکې خوحضرت یوشع بن نون وو اود حضرت عیسی ﷺ طرف ته وړاندیوالې کونکې هغه وو د کوم ذکر چه په سورت یاسین کښې دې اود محمد ﷺ په خدمت کښې وړاندې کیدونکې حضرت علی ؓ بن ابی طالب وو. ( [۲] ) داحدیث بالکل منکر دې صرف حسین اشقر دا روایت کوی اوهغه شیعه اومتروك دې. والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يٰحَسْرَةً | | عَلَى الْعِبَادِ | | مَا يَأْتِيْهِمْ |
| اې افسوس دې | | په حال دبندګانو باندې | | نه دې راغلې دوی ته |
| افسوس دې ! ددغه بندګانو په حال چې کله ورته څوك پیغمبر | | | | |
| مِّنْ رَّسُوْلٍ | اِلَّا | كَانُوْا | بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ | اَلَمْ يَرَوْا |
| یو رسول | مګر | وو دوی | چې په هغه پورې به ئې ټوقې کولې | آیا نه وینی دوی |
| ورغلې وو | نو دوی به ورپورې ټوقې کولې | ......... آیا دوی دې خبرې ته | | |
| كَمْ اَهْلَكْنَا | | قَبْلَهُمْ | مِّنَ الْقُرُوْنِ | اَنَّهُمْ |
| چې څومره هلاك کړې دی مونږه | | مخکښې ددوی نه | دقومونو نه | چې بیشکه هغوی |
| نه ګوری | چې ددوی نه وړاندې مونږ څومره قومونه تباه کړل | ......... کوم چې به دوی ته | | |
| اِلَيْهِمْ | لَا يَرْجِعُوْنَ | وَاِنْ كُلٌّ | لَّمَّا جَمِيْعٌ | لَّدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ |
| دوی ته | نه واپس کیږی | اونه دی دا ټول | مګر دا ټول به | مونږ ته — حاضر کړې کیږی |
| واپس راتشی | .........او ټول به مونږ ته مخامخ پیش کړې شی | | | |
| وَاٰيَةٌ | لَّهُمُ | الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ | اَحْيَيْنٰهَا | وَاَخْرَجْنَا |
| او نښه دتوحید ده | دپاره ددوی | زمکه — مړه | ژوندئ کړه مونږه هغه | او رااوویستله مونږه |
| اودوی دپاره یوه نښه مړه (اوچه) زمکه هم ده | .........چې مونږ هغه راژوندئ کړه | | | |
| مِنْهَا | حَبًّا | فَمِنْهُ | يَأْكُلُوْنَ وَجَعَلْنَا | فِيْهَا جَنّٰتٍ |
| دهغې نه | دانه (غله) | پس دهغې نه | خوری دوی — او پیدا کړل مونږه | په هغې کښې — باغونه |
| اوغلې موتری نه رازرغون کړې | ..... نودوی دهغې نه خوراکونه کوی | اومونږ په دې کښې دکهجورو | | |

[۱] ۲۸/القصص:۴۳.

[۲] طبرانی:۱۱۱۵۲ مجمع الزوائد:۱۰۲/۹.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ نَّخِيْلٍ | وَّاَعْنَابٍ | وَّفَجَّرْنَا | فِيْهَا | مِنَ الْعُيُوْنِ |
| دكجورو | او دانګورو | او جاري كړې مونږه | په هغې كښې | د چينونه |

او انګورو باغونه پيدا كړي دي | ...... او په دې كښې مو چينې جاري كړې دي

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِيَاْكُلُوْا | مِنْ ثَمَرِهٖ | وَمَا عَمِلَتْهُ | اَيْدِيْهِمْ |
| دپاره ددې چې اوخوري دوئ | د ميوې دهغې نه | او نۀ دي كړې دا پيداوښت | لاسونو ددوئ |

ددې دپاره چې دوئ ددغې باغونو ميوې اوخوري | او دا څيزونه ددوئ لاسونو نه دي جوړ كړي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَفَلَا يَشْكُرُوْنَ | سُبْحٰنَ | الَّذِيْ | خَلَقَ الْاَزْوَاجَ | كُلَّهَا |
| آيا پس دوئ شكر نۀ اوباسي | پاكي ده | هغه ذات لره | چې پيدا ئې كړل قسمونه | ټول |

نو بيا دوئ شكر ولې نه اوباسي | الله ﷻ هغه ذات دې چا چې ددې ټولو څيزونو جوړې پيدا كړې دي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِمَّا | تُنْۢبِتُ | الْاَرْضُ | وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ | وَمِمَّا |
| دهغې نه | چې زرغونوي ئې | زمكه | او په خپله دنفسونو ددوئ نه | او دهغې نه |

هم د زمكې په زرغونه كښې | اودغه شان د دوی په نفسونو كښې هم | او په هغه څيزونو كښې

لَا يَعْلَمُوْنَ

چې دوئ ئې نۀ پيژني |

چې دوئ ته هډو معلوم نه دی |

**قوله تعالی:: يٰحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ**

**دانبياء كرامو عليهم السلام خبره نه منونكو باندې حسرت اوافسوس:-** په بنديګانو باندې حسرت او افسوس دې. بنديګان به صبا په خپل ځان باندې څنګه پښيمانه وی اوبار باريه وائی ارمان افسوس مونږ خو خپل ځان پخپله خراب كړې. په بعضې قراءتونو كښې ((يحسرة العباد علی انفسها)) هم دې. (١) مطلب دا دې چه د قيامت په ورځ عذابونه اووينی نو لاسونه به مروړی او چه هغوی ولې د رسولانو تكذيب كولو او ولې ئې د الله تعالی د حكم خلاف كولو.

په دنياكښې خود دوی داحال ووچه كله هم يورسول راغلې هغوی بغير د څه ډيل نه دروغ ګڼړلې او په كولاوزره سره ئې د هغه بې ادبی اوسپكاوې كړې دې. اوكه دلته ئې لږ تامل كړې وونوسوچ به ئې كولو چه د دوی نه وړاندې كومو خلقو د پيغمبرانو نه دی منلې هغوی غرق اوتباه كړې شو اود هغوی خاوره ئې هم والوزوله. د هغوی نه خو يوهم بچ نه شو اونه د آخرت د هغه كورنه څوك واپس راغلو. په دې كښې د هغه خلقو هم رد دې كوم چه دهريه وو اود هغوی داخيال وو چه هم داسې به په دنياكښې ګرځو ژوندې به يو او مړه كيږوبه په واپس كيدو به بيا دنياته راځو ټول تيرشوی خلق موجود خلق او راتلونكی خلق به د قيامت په و رځ د الله تعالی په وړاندې د حساب كتاب د پاره پيش كولې شي. اوهلته به د هرې يوې بدئ اوهرې يوې نيكئ بدله ملاويږی. لكه چه بل آيت كښې ارشاد دې ﴿وَاِنْ كُلٌّ

(١) الطبری: ٢٠/٥١٢.

لَمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَالَهُمْ إِنَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾ (۱) يعنى هرسړى ته به د هغه د اعمالو پوره بدله ورکوى. په يوقراءت کښې ﴿لَمَا﴾ دې نود دې اثبات د پاره به وى اود ﴿لَمَّا﴾ لوستلو په وخت ان نافيه به وى اولمّا به په معنى د الا وى نود آيت مطلب به داسې وى چه نه دى ټول ولې ټول په ټول به زمونږ په وړاندې حاضريږى. په دويم قراءت باندې به ئې هم مطلب هم دغه وى. والله سبحانه وتعالى اعلم.

قوله تعالى:: وَآيَةٌ لَهُمُ الْأَرْضُ الْمَيْتَةُ

**د الله تعالى د وجود يوعظيم الشان نخښه:-** الله تعالى ارشاد فرمائى چه زما په وجودباندې اوزما په زبردست قدرت باندې اود مړو په ژوندى کولوباندې يوه نښه داهم ده چه مړه زمکه اوچه او شاړه پرته وى په کومه کښې چه هيڅ شينکې تازه والې توک وابنه وغيره نه وى زه په دې باندې د آسمان نه اوبه راوروم اوهغه مړه زمکه بيا راژوندئى شى شنه خوزيږى هرطرف ته شينکې او هم شينکې راټوکيږى اوقسم قسم ميوې اوګلونه ښکارى نوفرمائى چه مونږ دا مړه زمکه راژوندئ کړو او په دې کښې قسم قسم غلې راپيداکړو بعضې تاسو خورئ اوبعضې ستاسو څاروى خورى. مونږ په دې کښې د کهجورو انګورو باغونه تياروو نهرونه په کښې روانوو کوم چه باغونه اوپټى آبادوى اوخړوب کوى. دا ټول څکه چه د دې ونوميوې دنيااوخورى د پټواو باغونو ګټه حاصله کړى اوخپل حاجتونه پوره کړى. داهرڅه د الله تعالى په رحمت اود هغه په قدرت سره پيداکيږى د چا په وس اواختيارکښې نشته. ستاسو د لاسونو پيداکړې شوى څيزونه نه دى اونه په تاسوکښې د دې د راټوکولوطاقت شته اونه په تاسو کښې د دې د بچ کولوقدرت شته اونه د دې د پخولو اوتيارولو په تاسوکښې څه اختيارشته. صرف د الله تعالى داکار دې اود هغه مهربانى ده. اود هغه د احسان سره سره دا د هغه د قدرت نمونې دى بيا به دې خلقو څه شوى دى چه شکر نه کوى؟ اود الله تعالى ډير زيات او بې شميره نعمتونه هغه سره وى اود هغه احسان نه منئ. يومطلب ئې دابيان کړې دې چه دباغونو ميوې داکوم چه خورى هغوى د خپل لاس کرلې شوى هغوى ګنړى. د ابن مسعود ﷺ په قراءت کښې ((ومماعملته ايديهم)) دى. پاك د برکت نه ډك اود ټولونقصانونونه برى هغه الله تعالى دې چاچه د زمکې پيداوار اوپخپله تاسو هم جوړه جوړه پيداکړى نې اود مختلف قسمونو مخلوق جوړې ئې جوړې کړى دى کوم چه تاسو پيژنئى هم نه. لکه چه بل آيت کښې دى ((وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ)) (۲) مونږ د هريوڅيز جوړې پيداکړى دى دې د پاره چه تاسو نصيحت حاصل کړئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْهُ | نَسْلَخُ | الَّيْلُ | لَهُمُ | وَآيَةٌ | |
| دهغې نه | چې رااوباسو مونږه | شپه | دپاره ددوئ | او نښه دتوحيد ده | |
| او د دوئ دپاره يو نښه شپه ده \| چې مونږ ترې نه (رڼړا) | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِمُسْتَقَرٍّ | تَجْرِي | وَالشَّمْسُ | مُّظْلِمُونَ | هُمْ | فَإِذَا | النَّهَارَ | |
| خائې دقرار ته | چې روان دي | اونمر دي | په تياره کښې وى | هغوئ | پس يودم | ورځ | |
| ورځ راکاږو\| نودوئ په تيارۀ کښې پاتې شى \|اويوه (نښه) نمر دې \| چې په خپله مقرره لاره روان دي | | | | | | | |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْقَمَرَ | الْعَلِيمِ | الْعَزِيزِ | تَقْدِيرُ | ذَٰلِكَ | لَهَا | | |
| او سپوږمۍ ده | عالم الله | دغالب | اندازه ده | دا | چې مقررې دې هغه لره | | |
| دا د زبردست او پوهه الله ﷻ ترلې اندازه ده \| .................. اومونږ د سپوږمۍ دپاره | | | | | | | |

---

(۱) ۱۱/هود:۱۱۱.

(۲) ۵۱/الذاريات:۴۹.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَدَّرْنٰهُ | مَنَازِلَ | حَتّٰى | عَادَ | | |
| چې مقرر کړې دی مونږه هغې لره | منزلونه | تر دې پورې | چې واپس اوګرځی | | |
| منزلونه مقرر کړی دی (وړیړی وړیړی) تردې چې د کهجورې د زړې څانګې په شان | | | | | |
| كَالْعُرْجُوْنِ | الْقَدِيْمِ۞ | لَا الشَّمْسُ | يَنْۢبَغِيْ لَهَآ | اَنْ تُدْرِكَ | |
| پشان دخانګې دکجورو | پخوانۍ (وچې) | نه دې نمر | چې مناسب وی هغه لره | چې اورسوی | |
| وره پاتې شی ............ نه نمر دپاره دا ممکن ده چې هغه (وړاندې شی او) سپوږمۍ رالاندې کړی | | | | | |
| الْقَمَرَ | وَلَا الَّيْلُ | سَابِقُ | النَّهَارِ ۭ | وَكُلٌّ | فِيْ فَلَكٍ |
| سپوږمۍ | اونه شپه | مخکښې کیدونکې ده | دورځې نه | او ټول | په اسمان کښې |
| اونه شپه دورځې نه مخکښې راتلې شی اوهر يو پخپل خپل مدار کښې (لګيا دې) | | | | | |
| يَّسْبَحُوْنَ۞ | | | | | |
| لامبو وهی | | | | | |
| لامبو (چکر) وهی | | | | | |

قوله تعالى:: وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الَّيْلُ

د يوې بلې نخښې ذکر:- د الله تعالى د قدرت کامله يوه نښه بيانولې شی اوهغه شپه اوورځ ده چه د رڼا او تيارې والا دی اوبرابر يوبل پسې څی راځی. لکه چه بل ځای ارشاد دې ﴿اَلَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهٗ حَثِيْثًا ۙ وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمَ مُسَخَّرٰتٍۭ بِاَمْرِهٖ ۭ اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ ۭ تَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ۞﴾ (1) شپه په ورځ سره پټوی شپه ورځ زر زر لټوی راځی. دلته نی هم اوفرمائيل چه مونږ د شپې نه ورځ راکاږو ورځ خو ختمه شوه اوشپه راغله اود څلورو واړو طرفونه تياره خوره شوه. په حديث کښې دی چه کله د تيارې نه شپه راشی او ورځ د اخوانه لاړه شی اونمر ډوب شی نو روژه دار دې روژې ماتې کړی. (2) ظاهری آيت خوهم دا دې خوقتاده رحمه الله فرمائی د دې مطلب په شان د آيت ﴿يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ﴾ (3) دې. يعنی الله تعالى شپه په ورځ کښې او ورځ په شپه کښې داخلوی.

امام ابن جرير رحمه الله دا قول ضعيف ګڼړی اوفرمائی په دې آيت کښې چه داکوم لفظ "ايلاج" دې د دې معنی د يوکمې اود بل زياتې دې اودا مراد په دې آيت کښې نه دې. د امام صاحب رحمه الله داقول حق دې.

قوله تعالى:: وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا ۭ

د مستقر نه مراد خو مستقرمکانی يعنی د قرار ځای دې اوهغه د عرش لاندې هم هغه طرف دې. بس يونمر نه بلکه ټول مخلوق د عرش لاندې دې ځکه چه عرش د ټول مخلوق د پاسه دې اوټول نی راګيرکړی دی. اوهغه کره يعنی ګول څيز نه دې لکه چه هيئت دان وائی بلکه هغه د ګنبدپه شکل کښې دې. د کوم چه پښې دی اوفرښتو هغه اوچت کړې دی. د انسانانو په سرونوباندې د پاسه پاسه عالم کښې دې. نوچه کله نمر په آسمانی ګنبد کښې تيك د ماسپښين په وخت کښې وی هغه وخت هغه

(1) ۷/الاعراف:۵۴.
(2) صحيح بخاری کتاب الصوم باب متى يحل فطر الصائم:۱۹۵۴، صحيح مسلم:۱۱۰۰، ابوداوٗد: ۲۳۵۱، ترمذی:۶۹۸
(3) ۳۵/فاطر:۱۳.

عرش سره ډیر نیزدې وی بیاچه کله هغه راتاوشی اوپه څلورم اسمان کښې هم د دې مقام مقابل کښې راشی نودا د نیمې شپې وخت وی اوهغه د عرش نه ډیر لرې وی نوهغه سجده کوی اود راختو اجازت غواړی لکه څنګه چه په احادیثوکښې دی.

صحیح بخاری کښې د حضرت ابوذر ﷺ نه روایت دې زه د نمر د ډوبیدو په وخت کښې رسول الله ﷺ سره په جمات کښې ووم. حضور ﷺ ماته اوفرمائیل معلومه ده چه دانمر چرته ډوبیږی؟ ماوئیل چه الله تعالی اود هغه رسول ﷺ ښه پوهیږی. حضور ﷺ اوفرمائیل هغه د عرش لاندې لاړشی اوالله تعالی ته سجده کوی. بیا حضور ﷺ داآیت ﴿والشمس﴾ تلاوت اوکړو.(۱)

په یویل حدیث کښې دی دحضور ﷺنه حضرت ابوذر ﷺ د دې آیت مطلب تپوس اوکړو نوحضور ﷺ اوفرمائیل د ده د آرام ځائ د عرش لاندې دې.(۲) په مسنداحمد کښې د دې نه په وړاندینی حدیث کښې هم دی چه هغه د الله تعالی نه د واپس کیدو اجازت غواړی اوهغه ته اجازت ورکولې شی لکه چه ده ته وئیلې شی د کوم ځائ نه چه راغلې ئی هغه ځائ ته واپس شه نوهغه د خپل راختود ځائ نه راخیژی اوهم دغه د ده مستقر دې. بیا حضور ﷺ د دې آیت د شروع فقره اولوستله. (۳) په یوروایت کښې داهم دی چه نیزدې دې چه هغه سجده اوکړی خوقبلولې به نه شی اواجازت به غواړی خو اجازت به نه شی ورکولې بلکه ورته به وئیلې شی چه د کوم ځائ نه راغلې ئی هم هلته لاړشه نوهغه به هم د مغرب نه راخیژی. (۴) هم داد دې آیت کریمه معنی ده. حضرت عبدالله بن عمر ﷺفرمائی چه نمر راخیژی هغه د انسانانو ګناهونه واپس کوی هغه ډوبیږی اوپه سجده کښې پریوځی او اجازت غواړی اجازت ملاویږی. یوه ورځ به دې ډوبیږی او په داسې عاجزئ به سجده کوی چه اجازت به غواړی خواجازت به نه شی ورکولې. هغه به وائی چه لار لرې ده اواجازت ملاونه شو په دې وجه به اونه رسیدې شم. بیابه لږ ساعت حصارولو نه پس هغه ته وئیلې شی په کوم ځائ کښې چه ډوب شوې وې هم د هغه ځائ نه راوخیژه. هم دغه به د قیامت ورځ وی په کومه ورځ چه به ایمان راوړل بې کاره وی اونیکئی کول به هم د هغوی د پاره چه د اول نه نیکوکارنه وو بې کاره به وی. اودا هم وئیلې شوی دی چه د مستقر نه مراد د هغه د تلو انتهاء ده. پوره اوچتوالې چه په ګرمو کښې وی اوپوره ښکته والې چه په ژمی کښې وی نودا یوقول شو.

دویم قول دادې چه په دې آیت کښې د مستقرد لفظ نه مراد د ده د چال خاتمه ده د قیامت په ورځ به د ده حرکت اودریږی دا به بې نوره شی دا عالم کل به ټول ختم شی. دامستقر زمانی دې. حضرت قتاده ﷫ فرمائی چه هغه په خپل مستقرباندې روان وی یعنی په خپل وخت اومیعاد باندې چه دهغې نه وړاندېوالې نه شی کولې.(۵) په ژمی او اوړی کښې چه د هغه کومې لارې مقرر دی هم په هغه لاروباندې خې راخی.

**د ابن مسعود ﷺ قرات او د دهغه مطلب:**: د ابن مسعود ﷺ اوابن عباس ﷺ قراءت **﴿لامستقرلها﴾** دې یعنی د ده د پاره سکون اوقرار نشته بلکه شپه ورځ د الله تعالی په حکم سره روان وی نه اودریږی اونه ستړې

---

(۱) صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره یسٓ باب قوله ﴿والشمس تجری لمستقرلها...﴾:۴۸۰۲، صحیح مسلم: ۱۵۹بدون الایه.
(۲) صحیح بخاری کتاب التفسیر سوره یسٓ باب قوله ﴿والشمس تجری لمستقرلها﴾:۴۸۰۳،صحیح مسلم:۱۵۹، احمد:۱۵۸/۵، ابن حبان:۶۱۵۲.
(۳) احمد:۱۵۲/۵، صحیح بخاری کتاب بدء الخلق باب صفه الشمس والقمر:۳۱۹۹، صحیح مسلم: ۱۵۹، ترمذی:۲۱۸۶،السنن الکبری: ۱۱۴۳۰، شرح مشکل الاثار:۲۸۱،ابن حبان: ۶۱۵۴، الاسماء والصفات ص ۳۹۲، مسندالطیالسی: ۴۶۰.
(۴) صحیح بخاری:۳۱۹۹.
(۵) الطبری:۲۰۵۱۷.

کیږي. لکه چه ارشاد دي ﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ ۚ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ﴾ (۱) یعنی هغه ستاسود پاره نمر اوسپوږمئی مسخر کړی دی چه نه ستړي کیږی اونه اودریږی د قیامته پورې به روان وی. دا اندازه د هغه الله تعالی ده چه غالب دې. د کوم چه څوك مخالفت نه شی کولي. د چاحکم چه څوك روستوکولي نه شی. هغه علیم دي اوهغه هریوحرکت او سکون پیژنی. هغه په خپل کامل حکمت سره د دې رفتار مقررکړي دي. په کوم کښې چه نه اختلاف واقع کیدي شی اونه د دې برعکس کیدې شی. لکه چه ارشاد دي ﴿ فَالِقُ الْإِصْبَاحِ ۚ وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَنًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ﴾ (۲) د سحر راویستونکي چا چه شپه د راحت وخت جوړکړو اونمر اوسپوږمئی په حساب سره مقررکړل. دا اندازه د علم د خاوند ده. د حم سجده آیت نی هم داسې ختم کړو.

**قوله‌تعالی:: وَالْقَمَرَ قَدَّرْنٰهُ مَنَازِلَ**

**دسپوږمئ منزلونه او د هغې حکمتونه:**:بیا فرمائی چه د سپوږمئی مونږ منزلونه مقررکړی دی هغه په یو جدا چال باندې روانه ده. په کوم سره چه میاشتې معلومې شی. لکه چه د نمر په چال سره شپه ورځ معلومیدې شی. لکه چه ارشاد دې خلق تانه د سپوږمئی باره کښې تپوس کوی نوجواب ورکړه چه د حج او وختونود معلوموملود پاره دی. او په دې آیت کښې ارشاد دې چه هغه نمر ضیاء او سپوږمئی نورکړې دې اود دې منزلونه نی اودرولې دی دې د پاره چه تاسو کالونه او حساب معلوم کړئ.

یوآیت کښې دی چه مونږ شپه اوورځ دوه نښې جوړې کړی دی. د شپې نښه مونږ تیاره جوړه کړې اود ورځې نشانی مو رنړا جوړه کړې ده دې د پاره چه تاسو په دې کښې د خپل رب نازل کړې شوې رزق اولټوئ اود کالونوحساب کتاب معلوم کړې شئ. مونږ هریوخیز په ښه تفصیل سره بیان کړی دی. د نمر پرق پروق ده سره مخصوص دې اود سپوږمئی رنړا د دې نه ده. اود دې رفتارهم مختلف دې. نمر هره ورځ ډوبیږی اوراخیژی اوهم په دغه رنړا سره وی. اود دې د ډوبیدو اوراختو خایونه په ژمی اوړی کښې جدا جداوی. هم په دې وجه د شپې ورځې په اوږدوالی کښې کمې زیاتې کیږی. نمردورځې ستوري دې اوسپوږمئی د شپې ستوري دې.د دې منزلونه مقرر دی.

سپوږمئی د میاشتې په ړومبنی شپه راخیژی ډیره وړه غوندې وی کمه رنړائی وی په دویمه شپه نی رنړادې نه زیاتیږی اومنزل نی هم ترقی کوی. بیاچه څومره څومره اوچتیږی رنړائی زیاتیږی لکه د دې رنړاچه د نمر نه ملاوشوې وی آخر په څلوارلسمه شپه سپوږمئی پوره شی اود دې رنړا هم پوره کیږی. بیا کمیدل شروع کوی اودغه شان درجه په درجه وار په وار کمیږی اوپه مثال د کهجورې د ځانګې د ډکې په شان کیږی. په عربوکښې دسپوږمئی د رنړا په اعتبار سره د میاشتې د شپو نومونه کیخودلې شوی دی. مثلاً د ړومبو دریوشپونوم "غرر" دې د دې نه پس د دریو شپونوم "نفل" دې اود دې نه پس د دریوشپونوم "تسع" دې څکه چه د دې آخری شپه نهمه وی د دې نه پس د دریوشپونوم "عشر" دې داځکه چه د دې شروع د لسونه ده ددې نه پس د دریوشپونوم "بیض" دې څکه چه په دې شپوکښې د سپوږمئی رنړا ترآخره پورې وی. د دې نه پس د دریو شپو نوم د هغوی په نیز "درع" ده دا لفظ د درعاجمع ده د دې دانوم څکه کیخودلې دې چه د شپاړلسمې سپوږمئی لږه روستو راخیژی نود لږ ساعت پورې تیاره یعنی توروالې وی او په عربوکښې هغه چیلئی چه د هغې سر تور وی "شاة درعا" وائی.

---

(۱) ١٤/ابراهیم:۳۳.

(۲) ٦/الانعام:٩٦.

**قوله تعالى: اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ**

**د ادراک قمر مطلب:** د دې نه پس دريو شپوته "ظلم" وائي بيادريو ته "حنادس" بيا دريوته "دراري" دريو ته "محاق" څکه چه په دې کښې سپوږمئي ختمه شي اومياشت هم ختمه شي. ابوعبيده رحمه الله په دې کښې تسع اوعشر نه قبلوى اوګورئ کتاب "غريب المصنف" د نمر او سپوږمئي حدونه هغه مقررکړى دى نامکن دى چه يود خپل حدنه اخوا ديخواشي ياوړاندې روستوشي. د هغه په وخت کښې دا پته وى اود دې په وخت کښې هغه چپ وى. حسن رحمه الله وائي چه داسپوږمئي د شپې ده. د ابن مبارک رحمه الله قول دې د هواوزر دې اوسپوږمئي د اوبود غلاف لاندې ځائ کوى. ابوصالح رحمه الله فرمائي چه د دې رڼاد هغه رڼا نه شي رانيولې. عکرمه رحمه الله فرمائي چه د شپې نمر نه شي راختلې اونه شپه د ورځ نه وړانديوالې کولې شي يعنى د شپې نه پس شپه نه شي راتلې بلکه په مينځ کښې به ورځ راځي. نود نمر بادشاهي د ورځې وى اود سپوږمئي حکومت د شپې وى. شپه د اخوانه راځي اوديخوا ځي يوبل پسې وى خوولې نه د جنګيدو ويره اونه د بې نظمئي خطره نه داچه ورځ دې لاړه شي شپه رانه شي اونه د دې خلاف يوځي اوبل راځي. هريوبه خپل خپل وخت سره غيبيږى اوحاضريږي. تول په تول يعنى نمر سپوږمئي ورځ شپه په آسمان کښې روان دى اوګرځي راګرځي. د زيدبن عاصم رحمه الله قول دې چه د آسمان اوزمکې په مينځ کښې په فلك کښې دا ټول ګرځي راګرځي. خودا ډير غريب بلکه منکر قول دې بعضې خلق وائي چه هغه فلك د څرخ د پولئي په شان دې بعضې خلق وائي چه دا د ميچنې د پل د اوسپنې په شان دې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاٰيَةٌ | لَّهُمْ | اَنَّا حَمَلْنَا | ذُرِّيَّتَهُمْ |
| او بله نښه | د پاره ددوئ (داده) | چې مونږه سوارهٔ کړل | اولاد ددوئ |

| اوددوئ دپاره يوه نښنه داهم ده | .........چې مونږ د دوئ بچي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي الْفُلْكِ | الْمَشْحُوْنِ ﴿٤١﴾ | وَخَلَقْنَا | لَهُمْ | مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا |
| په کشتئ کښې | ډکه کړې شوې کښې | او پيدا کړل مونږه | دپاره ددوئ | پشان ددې | هغه څيزونه |

په ډکه بيړئ کښې سواره بوځو | .........او مونږ د بيړئ غوندې د سورلئ نور څيزونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَرْكَبُوْنَ ﴿٤٢﴾ | وَاِنْ نَّشَاْ | نُغْرِقْهُمْ | فَلَا صَرِيْخَ |
| چې دوئ پرسوريږى | او که اوغواړو مونږه | نو ډوب به کړو دوئ | پس نهٔ به وئ فرياد اوريدونکې |

هم پيدا کړې دي | اوکه مونږ اوغواړو نودوئ به غرق کړو | بيا به نه څوک ددوئ فرياد آوريدو وى

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | وَلَا هُمْ يُنْقَذُوْنَ ﴿٤٣﴾ | اِلَّا | رَحْمَةً | مِّنَّا |
| دوئ لره | اونهٔ به دوئ بچ کړې شي | مګر | دا (ټول) رحمت دې | د طرفه زمونږ نه |

او نه به دوى خلاصولې شي | ........................خودا ټوله زمونږ مهرباني ده

| | |
|---|---|
| وَمَتَاعًا | اِلٰى حِيْنٍ ﴿٤٤﴾ |
| او پريږده دوئ دپاره دنفعې اغستلو | ديو خاص وخته پورې |

اودوئ ته تريوې مقررې نيتې پورې فائده ورکول دى |

**قوله تعالى:: وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ**

**کشتئی اوذ الله تعالی قدرت:-** الله تعالى د خپل قدرت يوه بله نښنه ښائي چه هغه سمندر مسخر کړي دي په کوم کښې چه کشتئی برابر ځي راځي. د ټولونه اول کشتئی د حضرت نوح ﷺ وه په کومه کښې چه سواره شوی وو هغه پخپله اود هغه ملګری ايماندار بنديګان چه خلاصي ئې بيامونديلې وو باقی په مخ د زمکې يو انسان هم نه وو بچ شوې. مونږ د هغه زمانې د خلقو پلاران او نيکونه په کشتئی کښې کينولې وو چه بالکل ډکه وه ځکه چه په هغې کښې د ضرورت ټول سامان هم وو اودې سره ځناور هم وو چه د الله تعالى په حکم سره په دې کښې کينولې شوی وو. د هرقسم ځناورو يوه يوه جوړه وه ډير باوقار مضبوط اولوئی جهاز وو. داصفت هم د حضرت نوح ﷺ په کشتئی باندې صحيح راځي. دغه شان د اوچې سورلئی هم الله تعالى د هغوی د پاره پيداکړي دی. مثلاً اوښ چه په اوچه کښې هم هغه کارورکوی کوم چه کشتئی په اوبوکښې ورکوی دغه شان نور ځناور اوخاروی هم . اوداهم کيدې شی چه کشتئی د نوح ﷺ نمونه وه اوبيا هم په دې نمونه باندې نورې کشتئی اوجهازونه جوړيدل. د دې مطلب تائيدد دې آيت ﴿لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَّتَعِيَهَآ اُذُنٌ وَّاعِيَةٌ﴾ (۱) نه هم کيږي يعنی کله چه اوبو چپې اوکړې مونږ ته په کشتئی کښې سور کړې دې د پاره چه دا ستاسو د پاره يونه هيريدونکې ځيز جوړ کړی او ياد ساتونکی غوږونه دا ياد اوساتی. زمونږ دا احسان مه هيروه مونږ د سمندر نه ته واړولې. که مونږ غوښتې نو هم په دې کښې به مو ډوب کړې وې ټوله کشتئی به کيناسته هيڅ څوك به نه وو چه ستا فرياد به ئې اوريدلې. اونه به تاته څوك داسې ملاويدلوچه ته ئې بچ کړې وې خودا صرف هم زمونږ رحمت دې چه د اوچې اولمدې اوږده سفرونه په آرام اومزه سره کوئ اومونږ تاسو د خپل مقرر کړې شوی وخت پورې په هرقسم سره سلامت ساتو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | وَاِذَا | قِيْلَ | لَهُمُ |
| | | | او کله چې | اووئيلې شي | دوئ ته |
| | | | اوځه وخت چې دوئ ته اووئيلې شي | | |
| اتَّقُوْا | مَا | بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ | وَمَا | خَلْفَكُمْ | |
| چې ځان اوساتئ | دهغه انجام نه | چې په مخکښې ستاسو دې | او هغه | چې مخکښې ستاسونه تيرشوی دي | |
| چې دهغه عذاب نه اوويريږئ | کوم چې ستاسو نه وړاندې دې | اوکوم چې ستاسونه روستو هم | | | |
| لَعَلَّكُمْ | تُرْحَمُوْنَ۞ | وَمَا تَاْتِيْهِمْ | مِّنْ اٰيَةٍ | مِّنْ اٰيٰتِ | رَبِّهِمْ |
| دپاره ددې چې په تاسو رحم اوکړې شي | اونه راځي دوئ ته | يو آيت | | دآيتونو | درب خپل نه |
| چې رحمت درباندې اوشي | (نودوئ هيڅ پرواه نه کوی)اودوئ ته ددوئ درب دطرفه داسې نخښنه نه ده راغلې | | | | |
| اِلَّا كَانُوْا | عَنْهَا | مُعْرِضِيْنَ۞ | وَاِذَا | قِيْلَ | لَهُمْ اَنْفِقُوْا |
| مګر وی دوئ | دهغې نه | مخ اړونکی | او کله چې | اووئيلې شي | دوئ ته \| چې خرچ کړئ |
| چې دوئ ترې مه مخ نه وی اړولې | اوهرکله چې دوئ ته اووئيلې شي چې دهغې رزق نه خرچ کوئ | | | | |

(۱) ۶۹/الحاقه:۱۲.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِمَّا | رَزَقَكُمُ | اللّٰهُ | قَالَ الَّذِيْنَ | | كَفَرُوْا |
| دهغې رزق نه | چې درکړې دي تاسو ته | الله | نو وائي هغه کسان | | چې کفر ئې کړې دي |
| کوم چې تاسو ته الله ﷻ درکړې دي | | ..............نو کافران مسلمانانو ته | | | |
| لِلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْٓا | اَنُطْعِمُ | مَنْ | لَّوْيَشَآءُ اللّٰهُ | |
| هغه کسانو ته | چې ايمان ئې راوړې دې | آيا مونږه طعام ورکړو | هغه چاته | که غوښتلې الله | |
| داسې وائي چې آيا مونږ په هغه چا باندې خوراک اوکړو | | | که دالله ﷻ خوښه شوې وې | | |
| اَطْعَمَهٗٓ | اِنْ اَنْتُمْ | اِلَّا | فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ۝ | | |
| نو طعام به ئې ورکړې ووه هغه ته | نه يئ تاسو | مگر | په گمراهئ ښکاره کښې | | |
| نو رزق به ئې ورکړې ووا | ....دا تاسو خو په ښکاره گمراهئ کښې پراته يئ | | | | |

**قوله تعالى:: وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّقُوْا**

**منکروالله دهرې خبرې نه مخ اړوی:** دکافرانودسرکشئ،نادانئ،اودکبربيان شروع دې،چه هغه ته دگناهونه دبچ کيدواوتيلې شی،چه څه تاسوکړی دی په هغې باندې پيښمانه شئ،اوتوبه اوکړئ، او د مخکښې دپاره احتياط کوئ،ددې په نتيجه کښې به الله تعالى په تاسوباندې رحم اوکړی اوتاسوبه دعذاب نه اوساتی.نوهغوی په دې باندې عمل کول خويوطرف ته،مخ راواچوی.قرآن مجيدداجمله نه ده بيان کړې خکه چه راروان آيت په دې باندې صفادلالت کوی،په دې کښې دی چه يوه داخبره څه ددوی خودا عادت شوې دې،چه دالله تعالى دهرې خبرې نه مخ اړوی.نه دهغه توحيدمنی،اونه رسولان رښتونې منی.اونه په هغوی کښې سوچ اوفکرکولوعادت شته اونه په دوی کښې دقبوليت خاصيت اونه دګټې حاصلولوتجربه.

**قوله تعالى:: وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اَنْفِقُوْا**

**کافردالله تعالى په لارکښې خرچ نه کوی::** دوی ته چه کله دالله تعالى په لارکښې دخيرات ورکولو اوئيلې شی،چه الله تاسوته څه درکړی دی په هغې کښې غريبانانو،مسکينانواومحتاجوته هم حصه ورکړئ.نودوی جواب ورکوی که دالله تعالى اراده وه نودې غريبانانوته به ئې پخپله ورکړې وه.چه کله د الله تعالى اراده نه وه نو مونږدالله تعالى دارادې خلاف ولې اوکړو؟ تاسوچه مونږته دخيرات دا نصيحت کوئ نوتاسوبه دې کښې بالکل په غلطه يئ،داهم کيدیشی چه داروستئ جمله د کافرانوپه ترديدکښې دالله تعالى دطرف نه وی.يعنی الله تعالى فرمانی چه تاسوبالکل گمراه يئ.خوددې نه دانه معلوميږی چه داهم دکافرانو دجواب حصه ده.والله اعلم.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى | هٰذَا الْوَعْدُ | اِنْ كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ۝ | مَا يَنْظُرُوْنَ | اِلَّا |
| اووائی دا خلق کله به وی | دا وعده | که يئ تاسو | رښتينی | انتظار نه کوی دا خلق | مگر |
| او دوی وائی چې (ښه نو) داوعده بهٔ آخر کله پوره کيږی (چې قيامت به راځی) | | که تاسو رينښتونی يئ | | دا خلق خوبس ديوې | |
| صَيْحَةً وَّاحِدَةً | تَاْخُذُهُمْ | وَهُمْ يَخِصِّمُوْنَ۝ | | | |
| د يوې چغې | چې اوبه نيسی دوئ | او حال دا چې دوئ به جگړې کوی | | | |
| درنې چغې په انتظار کښې دی | چې راوبه ئې نيسی او دوئ به لا په خپلو جگړو کښې لگيا وی | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ | تَوْصِيَةً | وَّلَآ اِلٰٓى اَهْلِهِمْ | يَرْجِعُوْنَ۝ |
| پس طاقت به نهٔ لري دوئ | دوصيت كولو | اونهٔ به اهل خپل ته | واپس لاړ شي دوئ |

نو نه به دوصيت كولو فرصت بيا اومومئ | اونه به دكور خلقو ته واپس لاړ شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَنُفِخَ | فِي الصُّوْرِ | فَاِذَا هُمْ | مِّنَ الْاَجْدَاثِ | اِلٰى رَبِّهِمْ |
| او پوكي به اووهلي شي | په صور كښې | پس يو دم به دوئ | دقبرونو نه | رب خپل ته |

اوشپيلئ به پوک وهلې شي | نودوئ ټول به دقبرونو نه دخپل رب طرفته په منډه روان شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَنْسِلُوْنَ۝ | قَالُوْا | يٰوَيْلَنَا | مَنْۢ بَعَثَنَا | مِنْ مَّرْقَدِنَا |
| منډې وهي | اوبه وائي دوئ | اے افسوس دي مونږ لره | چا راپاڅولو مونږه | دځائي دخوبونو زمونږ نه |

دابه وائي چې هائې زمونږ بدنصيبه | دا مونږ چا د قبرونو نه راپاڅولو ؟ | داهم هغه قيامت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هٰذَا مَا | وَعَدَ الرَّحْمٰنُ | وَصَدَقَ | الْمُرْسَلُوْنَ۝ | اِنْ كَانَتْ |
| دا هغه څيز دې | چې وعده كړې وه رحمن ددې | او رښتيا وئيلي ووُ | رسولانو | نهٔ به وي |

دې دكوم وعده چې الله ﷻ رحمان كړې وه | او پيغمبرانو واقعي رښتيا وئيلي وو | دا به نور څه نه وي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِلَّا | صَيْحَةً وَّاحِدَةً | فَاِذَا هُمْ | جَمِيْعٌ | لَّدَيْنَا | مُحْضَرُوْنَ۝ |
| مگر | وي به چغه يوه | پس يودم به دوئ | ټول | مونږ ته | حاضر كړې شي |

پس يوه درنه چغه به وي | ........او زر تر زره به دوئ ټول زمونږ په مخامخ كړې شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَالْيَوْمَ | لَا تُظْلَمُ | نَفْسٌ | شَيْـًٔا | وَّلَا تُجْزَوْنَ |
| پس نن ورځ به | ظلم نهٔ شي كيدې | په يو نفس باندې | هيڅ قدرله | اوبدله به نهٔ شي دركړې تاسو له |

نو نن (دقيامت په) ورځ بهٔ په هيچا هيڅ قسم ظلم نه كيږي | اوتاسو ته به دهغو عملونو

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِلَّا | مَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ۝ |
| مگر دهغې | چې وئ تاسو | چې كول به مو | |

بدله ملاويږي | كوم چې تاسو كول |

**قوله تعالىٰ:: وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ**

**دقيامت منكران:** كافرانوبه دقيامت راتلل نه منل،په دې وجه باندې به هغوى نبيانواومسلمانانوته وئيل چه قيامت ولې نه راولې؟ ښه نودا اووايئ چه كله به راځي؟الله تعالى هغوى ته جواب وركوى چه دهغې راوستلودپاره به مونږته څه تيارى نه وى كول پكاربس يوه شپيلئ به اووهلې شي.

ددنياخلق به په خپلو كارونوكښې مشغول وى،چه الله تعالى به حضرت اسرافيل عليه السلام ته دشپيلئ وهلو حكم وركړى.هغه وخت به خلق يوخوا بل خوا غورخيدل شروع شي،په دې تيزاسمانى اوازباندې به ټول خلق په محشركښې دالله ﷻ مخكښې حاضركړې شي،ددې چغې نه پس به چاسره دومره مهلت هم نه وى چه دچانه څه واورى.څه وصيت يانصيحت اوكړى.اونه به بياخپل كوروالوته دتلوطاقت وركښې وى

ددې آيت په باره کښې ډيرحديثونه ذکرشوی دی، کوم چه مونږېل ځاۍ ليکلی دی. ددې رومبۍ نفخه نه پس به دويمه نفخه وی، دې ته نفخة البعث د والنشور وائی چه په هغې باندې به ميدان حشر ته غونډ کړې شی، صرف هميشه اوسيدونکې الله تعالی به ختم نشی.دهغې نه پس به دبياژوندی کيدو نفخه وی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَنُفِخَ | فِي الصُّوْرِ | فَإِذَا هُمْ | مِّنَ الْأَجْدَاثِ | إِلٰى رَبِّهِمْ | |
| او پوکي به اووهلي شي | په صور کښې | پس يو دم به دوئ | دقبرونو نه | رب خپل ته | |
| اوشپیلئ به پوک وهلې شی \| نودوئ ټول به دقبرونو نه دخپل رب طرفته په منډه روان شی | | | | | |
| يَنْسِلُوْنَ | قَالُوْا | يٰوَيْلَنَا | مَنْ بَعَثَنَا | مِنْ مَّرْقَدِنَا | |
| منډې وهی | اوبه وائي دوئ | اے افسوس دې مونږ لره | چا راپاڅولو مونږه | دخائي دخوبونو زمونږ نه | |
| دابه وائی چې هائې زمونږ بدنصيبه \| دا مونږ چا د قبرونو نه راپاڅولو ؟ \| داهم هغه قيامت | | | | | |
| هٰذَا مَا | وَعَدَ الرَّحْمٰنُ | وَصَدَقَ | الْمُرْسَلُوْنَ | إِنْ كَانَتْ | |
| دا هغه خيز دې | چې وعده کړی وه رحمن ددې | او رښتيا وئيلی وو | رسولانو | نهٔ به وی | |
| دې ادکوم وعده چې الله ﷻ رحمان کړې وه \| او پيغمبرانو واقعی رښتيا وئيلی وو \| دا به نور څه نه وی | | | | | |
| إِلَّا | صَيْحَةً وَّاحِدَةً | فَإِذَا هُمْ | جَمِيعٌ | لَّدَيْنَا | مُحْضَرُوْنَ |
| مگر وی به | چغه يوه | پس يودم به دوئ | ټول | مونږ ته | حاضر کړې شی |
| بس يوه درنه چغه به وی \| .........او زر تر زره به دوئ ټول زمونږ په مخامخ کړې شی | | | | | |
| فَالْيَوْمَ | لَا تُظْلَمُ | نَفْسٌ | شَيْئًا | وَّلَا تُجْزَوْنَ | |
| پس نن ورځ به | ظلم نهٔ شی کيدې | په يو نفس باندې | هيڅ قدرله | اوبدله به نهٔ شی درکړې تاسو له | |
| نو نن (دقيامت په) ورځ بهٔ په هيڅا هيڅ قسم ظلم نه کيږی \| اوتاسو ته به دهغو عملونو | | | | | |
| إِلَّا مَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ | | | |
| مگر دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو | | | |
| بدله ملاويږی \| کوم چې تاسو کول \| | | | | | |

**قوله تعالی:: وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ**

ددويمې شپيلی وخت.په دې ايتونوکښې ددويم نفخه ذکردې،چه په هغې باندې به مړی ژوندی شی، د (ينسلون) مصدر(نسلان) دې،اوددې معنی تيزگرځيدل دی.څنگه په بل آيت کښی دی.﴿ يَوْمَ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْأَجْدَاثِ سِرَاعًا﴾ په کومه ورځ چه به دوی دقبرونونه راوځی اوتيزتيزبه گرځی لکه چه هغوی څه نشان پسې روان وی.

**قوله تعالی:: مِنْ مَّرْقَدِنَا**

قبر ته مرقد دارام ځائې وئيل د قيامت د سختئ نسبت دې:: اوبه دنياکښې به دوی دقبرونونه دپاسيدو انکار کولونودوی به دې حالت کتلوسره وائی چه هاې افسوس مونږنې دخوب دځائ نه راپاسولو.ددې نه دقبردعذاب نه کيدل نه ثابتيږی،څکه چه کومې سختئ اوتکليف به دوی اوس وينئ دهغې په نسبت



به دقبر عذاب ډېرزيات کم وي.لکه چه هغوی هلته په ارام کښې وو.څه بزرګانو داهم فرمائيلی دی چه ددې نه بس څه وخت مخکښې هغوی په ربښتياباندې اوده شي.حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه دړومبۍ نفخې اودويمې نفخې په مينځ کښې به دوی اوده شي،په دې وجه به دوی داسې وائي(۱)،ددې په جواب کښې به ايمانداره خلق وائی چه هم داالله تعالی وعده وه اودهغه دربښتونی رسولﷺ به هم دا فرمائيل.داهم وئيلی شوی دی چه دابه فرښتې وائي.په دواړوخبروکښې داسې يوشان والې کيدې شی چه فرښتې اومومنان دواړه به دا وائي .والله اعلم.

عبدالرحمن بن زيد رحمه الله فرمائی چه داټولې خبرې دکافرانودې،خوصحيح خبره هغه ده کومه چه مونږمخکښې ذکرکړه.څنګه چه په سوره صافات کښې دی چه دوی به وائی هاې افسوس په مونږ باندې.دادجزاورځ ده.هم دادفيصلې ورځ ده،کومه به چه مونږدروغ ګڼړله اوپه آيت کښې دی:﴿وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ﴾

چه په کومه ورځ به قيامت وي ګنهګاران به قسمونه خوری چه هغوی دلږساعت دپاره پاتې شوی وو،هم دغه شان هغوی دحق نه مخ اړولې وو،هغه وخت به ايمانداره عالمان وائی چه تاسودالله تعالی دليکلومطابق دقيامت دورځې پورې وئ.هم دادقيامت ورځ ده خوتاسوېې علمه يئ.تاسوخودانه کيدونکې ګڼړله.اوداپه مونږباندې بالکل اسانه ده،ديواوازانتظاردې چه ټول مخلوق به زمونږمخکښې وي.څنګه چه په بل ايت کښې دی چه دوينا سره به هغوی په ميدان کښې جمع شي.

اوپه ايت کښې فرمائيلی دی چه دقيامت راتلل خودسترګې خوزولونه هم زيات نزدې دی. اوفرمائيلی دی.﴿ يَوْمَ يَدْعُوْكُمْ فَتَسْتَجِيْبُوْنَ بِحَمْدِهٖ ﴾ په کومه ورځ چه به هغه تاسوراوغواړي،او تاسوبه دهغه تعريف کولوسره ورته جواب ورکړئ،اوتاسوبه يقين اوکړئ چه تاسوډيرلږوخت پاتې شوي يئ.يعنی دحکم سره به تاسوټول حاضرشئ،هغه ورځ به دچايوعمل هم نشي پټيدې،هريوته به دخپل عمل بدله ورکړې شي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | إِنَّ | أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ | الْيَوْمَ |
| | | بيشکه | ملګرې دجنت | نن ورځ |
| بيشکه جنتيان به په دغه ورځ په خپلو مشغلو کښې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْ شُغُلٍ | فٰكِهُوْنَ ﴿۵۵﴾ | هُمْ | وَأَزْوَاجُهُمْ | فِيْ ظِلٰلٍ |
| په مشغولتيا کښې | مزې اغستونکې دی | هغوئ | او ښځې دهغوئ | په سورو کښې |
| مشغول وي ......... دوئ او ددوئ بيبيانې به د (ونود) سيورو لاندې وي | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى الْأَرَآئِكِ | مُتَّكِـُٔوْنَ ﴿۵۶﴾ | لَهُمْ | فِيْهَا | فَاكِهَةٌ | وَّلَهُمْ |
| په تختونو باندې | تکيه وهونکې دی | ددې دپاره دهغوئ | په هغې کښې | ميوې | اودې دپاره دهغوئ |
| په تختونوباندې تکيه لګولې ناست به وي \| دوئ ته به ميوې ورکولې شي \| او چې څه غواړي | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَّا | يَدَّعُوْنَ ﴿۵۷﴾ | سَلٰمٌ | قَوْلًا | مِّنْ رَّبٍّ | رَّحِيْمٍ ﴿۵۸﴾ |
| هغه خيزونه | چې هغوئ ئې غواړي | سلام دې | وينا | دطرفه درب | مهربان نه |
| نوهغه بهٔ ورته ملاويږي ......... دمهربانه رب دطرفنه به پرې سلامونه وئيلې شي | | | | | |

(۱) الطبری: ۵۳۲/۲۰.

**قوله تعالى:: إِنَّ أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ**

**په جنتيانوباندې انعامونه** جنتيان خلق به دقيامت دميدان فارغيدونه پس اکرام اوتعظيم سره جنتونوته اورسولې شي،اودهغه ځائې په نعمتونواوراحتونوکښې داسې مشغول شي چه بل طرف ته به ئې نه څه خيال کيږي اونه زړه.دوی به ددوزخ اودوزخيانونه بې فکره وی.په خپلومزواولذتونوکښې به دوی داسې خوشحاله وی چه دهريوځيزنه بې خبره شي.ډير تروتازه به وی.دوی ته به ناواده کړې حورې ملاوَوی،دوی سره به په دې مزواوخوندونوکښې دهغوی ښځې اوحورې هم شاملې وی،دجنتې ميوو والا ونوپه سوروکښې به دوی نرموتختونو باندې په بې غمئ اوبې فکرئ سره دالله تعالى دمهماندارئ نه خوندونه اخلى.هرقسمه ميوې به دوی ته موجودوی،اودکوم ځيزخواهش چه وی الله تعالى به ئې پوره کوی.

**دجنت تعريف او دهغه خواهش::** دابن ماجه کتاب سنن اويه ابن ابى حاتم کښې دی چه رسول اللهﷺ فرمائيلی دی چه په تاسو کښې څوک هغه جنت ته دتلوخواهش اوتياری کولووالااوتيزی خودلو والا شته؟ چه په هغې کښې څه ويره نشته، د کعبې په رب مې دې قسم وی،هغه ټول نوردې،دهغې تازګئ بې شماره دی،دهغې شين والې خوزيږی ،د هغې کورونه مضبوط اواوچت دی،دهغې نهرونه ډك اوروان دی.دهغې ميوې ذائقې والا،پخ شوې اوډيرې دی.په هغې کښې خائسته پيغلې حورې دی، د هغوی لباس رينمی اوقيمتی دې،دهغې نعمتونه هميشه اوبې مثاله دی.هغه دسلامتيا کوردې،هغه دشنواوتازه ميوباغ دې،دهغې نعمتونه زيات اوخائسته دی.اودهغې محلونه اوچت اوخائسته دی.دې اوريدلوسره چه څومره صحابه رضوان الله تعالى اجمعين وو،ټولواووئيل حضور!مونږدې دپاره تيارياني اوددې حاصلولودپاره کوشش کونکی يو.حضورﷺ اوفرمائيل انشاء الله اووايئ،نوهغوی ټولواووئيل انشاءالله.([1])

**قوله تعالى:: سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ**

**جنت کښې به د هر طرفنه سلام وی و رب به پرې هم سلام کوی::** دالله تعالى دطرف نه په هغوی باندې سلام دې، پخپله الله تعالى هم دجنتيودپاره سلام دې.څنګه چه فرمائيلی دی.﴿ تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهٗ سَلٰمٌ ﴾ په کومه ورځ چه به هغوی الله تعالى سره ملاويږی دهغوی تحفه به سلام وی.رسول اللهﷺ فرمائی،جنتان به په خپلونعمتونوکښې مشغول وی،چه دبره طرف نه به يونوراوپرقيږی،دوی به خپل سرونه اوچت کړی نودالله تعالى دديدارشرف به ورته حاصل شي،اورب به اوفرمائی."السلام عليکم يا أهل الجنة" يعنى ددې ايت معنى ده.(سلام قولا) چه جنتيان به خاص طورباندې الله تعالى وينى اوالله تعالى به هغوی وينى.ديونعمت طرف ته به هم هغوی نه ګوری تردې چه د دوی مخونوته به پرده راشی.اونوراوبرکت به دهغوی سره پاتې شي.داحديث په ابن ابى حاتم کښې دې خوسندئی کمزورې دې.په ابن ماجه کښې هم په کتاب السنة کښې داروايت موجوددې.([2])

حضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله فرمائی چه الله تعالى کله ددوزخيانواوجنتيانونه فارغ شي، نو دا وريځ به سوری کښې به متوجه شي،فرښتې به دهغه سره وی،جنتيانوته به سلام اوکړی اوجنتيان به جواب ورکړی.

**جنتيانو سره دالله تعالى کلام::** قرظی رحمه الله فرمائی چه دادالله تعالى په فرمان (سلام قولا)کښې موجوددی.هغه وخت به الله تعالى فرمائی چه زمانه څه غواړې هغه اوغواړئ.دوی به وائی پروردګاراهرڅه موجود دی،

[1]) ابن ماجه كتاب الزهد باب صفة الجنة: ٤٣٣٢،

[2]) ابن ماجه المقدمه باب فيما الكرت الجهيمة :١٨٤، الشريعة للاجرى:٦١٦، صفة لابى نعيم:٨٨.

څه اوغواړو؟الله تعالی به فرمائی اوتهیك ده،بیاهم که څه موږه زره کنبی راخی،اوغواړی.دوی به وائی بس دستارضاپکارده.الله تعالی به اوفرمائی هغه ماتاسوته درکړی ده،اوپه دغه وجه تاسوزماپه دې مهمان خانه کنبی یئ:اوماتاسوددې مالکان کړی یئ:جنتیان به وائی نوالله بیامونږدستانه څه اوغواړو؟ تا مونږ ته دومره څه راکړی دی،چه ته حکم اوکړې نوپه مونږکنبی یوکس دټولو انسانانو او پیریانو دعوت کولې شی.اوهغوی ته به مره خیته خوراك ورکولې شی اوهغوی ته جامې اچولې شی.بلکه دهغوی ټولوضرورتونه پوره کولې شی اوبیابه هم دهغوی په ملکیت کنبی څه کمې رانشی.الله به اوفرمائی ماسره نورهم شته،نوفرښتې به دالله دطرف نه نوې نوې تحفې راوړی.امام ابن جریرﷺدارو ایت په ډیرومسندونوکنبی راوستې دې.خودارو ایت ډیرغریب دې.والله اعلم. (١)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَامْتَازُوا | الْيَوْمَ | أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ۝ | أَلَمْ أَعْهَدْ | إِلَيْكُمْ |
| او جدا شئ | نن ورځ | اے مجرمانو | آیا حکم نهٔ ووکړې ما | تاسو ته |
| (اومجرمانو ته به وئیلې شی)چې ائې مجرمانو! تاسو(ددوئ نه) جدا شئ \| ائې د آدم اولاده! | | | | |
| يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ | أَن لَّا تَعْبُدُوا | الشَّيْطَٰنَ | إِنَّهُۥ | لَكُمْ عَدُوٌّ |
| اے اولاد دادم | چې بندګی مهٔ کوئ | دشیطان | بیشکه هغه | ستاسو دپاره \| دشمن |
| ایا ماتاسو نه ددې خبرې وعده نه وه اخستې \| چې دشیطان عبادت مه کوئی ؟\| هغه ستاسو ښکاره | | | | |
| مُّبِينٌ۝ | وَأَنِ اعْبُدُونِي | هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ۝ | | وَلَقَدْ أَضَلَّ |
| ښکاره دې | او چې بندګی کوئ زما | دا لاره نیغه ده | | اوبه تحقیق بې لارې کړل هغه |
| دښمن دې \| اودا چې صرف زما عبادت کوئی \| هم دانیغه لاره ده \|..............او هغه په تاسو | | | | |
| مِنكُمْ | جِبِلًّا كَثِيرًا | أَفَلَمْ تَكُونُوا | تَعْقِلُونَ۝ | |
| ستاسو نه | خلق ډیر | آیا نهٔ یئ تاسو | چې دعقل نه کار واخلئ | |
| کنبې ډیر خلق ګمراه کړی دی\| .......نوآیا تاسو نه پوهیږئی \| | | | | |

**قوله تعالی:: وَامْتَازُوا الْيَوْمَ أَيُّهَا الْمُجْرِمُونَ۝**

**قیامت کښې به مجرم او غیر مجرم جداجدا شی.** فرمائی چه نیك خلق به دبدکارونه چهانړکړې شی، کافرانو ته به اووئیلې شی چه دمومنانونه لرې شئ:بیابه مونږپه دوی کنبی فرق اوکړو،هغوی به بیل بیل کړو. هم دغه شان په سوره روم کنبی دی.( وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَتَفَرَّقُونَ۝) په کومه ورځ چه به قیامت وی په هغه ورځ به ټول جداجداکړې شی.یعنی دهغوی به دوه ډلې جوړې کړې شی.په سوره الصافات کنبی فرمان دې چه (احْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ) یعنی ظالمان اودهغوی په شان اودهغوی ددروغو معبودان چاته چه به هغوی سجدې کولې،اوهغوی ته ددوزخ لاراوښایئ:په جنتیانوبه چه څه رنګه انعامونه وی هم دغه شان به په دوزخیانوباندې سختیانې وی.هغوی ته به په وینا کنبی وئیلې کیږی چه دستاسونه وعده نه وه اخستلې شوې چه دشیطان مه منئ:هغه دستاسو دښمن دې.خوددې نه پس هم تاسو زما رحمن نافرمانی اوکړه،اودشیطان خبره مراومنله. خالق، مالك،او رازق زه اوفرمانبرداری دې زما ددربارنه د شړلې شوی اوکړې شی.ماخوونیلی ووچه هم زمااومنئ: اوماته سجدې اوکړئ. اوماته درارسیدو لاره سیده اونزدې ده،خوتاسوالټه لاړئ،دلته به هم الټه ځئ:اودنیك بختواوستاسولارې

---

(١) الطبری: ٥٤١/٢٠.

جداجدا دی، دوی جنتیان دی اوتاسودوزخیان یئ.

(جبلا)نه مطلب زیات خلق دی،په لغت کښی (جبل)هم ونیلې شی،اوجبل هم ونیلې شی.شیطان تاسو کښی ډیرخلق دهوکه کړل اودصحیح لارنه ئی کوزکړل اوپه تاسوکښی دومره عقل هم نه وؤ،چه تاسو فیصله کړې وې چه درحمن اومنواوکه دشیطان،الله تعالی ته سجده اوکړواوکه مخلوق ته!

**قوله تعالی::** **اَلَمۡ اَعۡهَدۡ اِلَیۡکُمۡ**

**جهنم به هم داسې اعلان اوکړي::** ابن جریرکښی دی چه دقیامت په ورځ دالله په حکم به دوزخ خپل څټ راوچت کړی چه په هغې کښی به سخته تیاره وی اوبالکل ښکاره به وی.هغه به وائی چه اې انسانانو!ادتاسونه الله تعالی وعده نه وه اخستلې،چه تاسودشیطان عبادت مه کوئ؟هغه ستاسوښکاره دښمن دې،اوزماعبادت کوئ داسیده لارده.هغه په تاسوکښی اکثرګمراه کړل.تاسونه پوهیدئ؟اې ګنهګارانو!اتاسونن جداشئ،هغه وخت به نیك اوبدخلق جداشی،هریوبه راپریوځی.هریوبه دهغه عمل نامې طرف ته رااوبللې شی.نن به هم هغه بدله اوموموئ کومه چه به موکوله.[1]

هٰذِهٖ جَهَنَّمُ

| دا دوزخ دی

داهغه دوزخ دې چې

الَّتِیۡ کُنۡتُمۡ تُوۡعَدُوۡنَ۝ اِصۡلَوۡهَا الۡیَوۡمَ

هغه | چې وئ تاسو | چې وعده به ئې درسره کولې شوه | ننوزئ دې ته اوسوزئ | نن ورځ

تاسوسره به ئې وعده کولې شوه|دهغه کفر او انکار په بدله کښې چې تاسوسره به کولې شوه نن دې ته

بِمَا کُنۡتُمۡ تَکۡفُرُوۡنَ۝ اَلۡیَوۡمَ نَخۡتِمُ عَلٰۤی اَفۡوَاهِهِمۡ

په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې کفر به مو کولو | نن ورځ | مهراوهو مونږه | په خلو ددوئ باندې

ورننوځئ | ...............نن به مونږ ددوئ په خلو باندې مهر اولګوؤ،

وَتُکَلِّمُنَاۤ اَیۡدِیۡهِمۡ وَتَشۡهَدُ اَرۡجُلُهُمۡ بِمَا

او خبرې به کوی زمونږ سره | لاسونه ددوئ | او ګواهی به کوی | خپې ددوئ | په هغه کارونو

اوددوئ لاسونه به مونږ سره خبرې کوی | اوددوئ پښې به ددوئ په عملونو باندې

کَانُوۡا یَکۡسِبُوۡنَ۝ وَلَوۡ نَشَآءُ لَطَمَسۡنَا

چې وؤ دوئ | چې کول به ئې | او که اوغواړو مونږه | نو خامخا بندې به کړو مونږه

ګواهی ورکوی | ...............اوکه چرې مونږ غوښتلې نو ددوئ سترګې به مو

عَلٰۤی اَعۡیُنِهِمۡ فَاسۡتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَاَنّٰی یُبۡصِرُوۡنَ۝

سترګې ددوئ | بیا به ددوئ راوړاند شی | لارې ته | پس څرنګې به | لیدل کوی دوئ |

ړندې کړې وې | نولارې طرفته به ئې منډې وهلې | ..........خو لیدل به ئې څنګه کولې شو

[1] الطبری : ۵٤۲/۲۰ .

| |
|---|
| وَلَوْنَشَاءُ لَمَسَخْنٰهُمْ عَلٰى مَكَانَتِهِمْ فَمَا اسْتَطَاعُوْا |
| اوکه اوغواړو موږ،هرومرو خامخا به مسخ کړو موږ دوئ په ځایونو ددوئ باندې پس طاقت به نه لري دوئ |
| اوکه موږ غوښتلي ا نو په دغه ځائي به موددوئ شکلونه مسخ کړي وو ا نو بیا به نه |
| مُضِيًّا وَّلَا يَرْجِعُوْنَ |
| وړاندې تلو ا اونه به واپس کېدې شي ا |
| وړاندې تلې شول ا اونه به روستو راګرزیدې شول ا |

قوله تعالی:: هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ

دمجرمانوخولې به بندکړئ شي:دوزخ نه به شغلې اوخي،چغې به وهي اوغصې سره مخې ته راشي، او کافرانو ته به اوونیلې شي چه داهغه دوزخ دې چه دکوم ذکربه زمارسول کوو.ددې نه به نی تاسو ویرولې،اوتاسوبه ترې انکارکولو.نواوس دخپل کفرمزه واخلئ،پاسئ دې ته ورکوزشئ،نوپه ایت کښې دی:یوم یدعون:په کومه ورځ چه به دوی دوزخ ته وراوغورځولې شي اوبه ونیلې شي هم داهغه دوزخ دې دکومې نه به چه تاسوانکارکولو،اووایئ داجادوکه تاسوړانده شوئ؟ دقیامت په ورځ باندې به چه داکافران یامنافقان دخپلوګناهونونه انکارکوی،اوقسمونه به خوری نوالله تعالی به ددوی خولې بندکړی اوددوی دبدن اعضاء به رښتونې ګواهی ورکول شروع کړی.

قوله‌تعالی::وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ

قیامت کښې الله ﷻ سره د انسان جګړه او د اندامونو ګواهي::حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه موږ درسول الله ﷺ سره وو،نوحضور ﷺ یوناځاپه داسې په خنداشوچه ورئ نی ښکاره شوې،بیائی زمونږنه تپوس اوکړوچه تاسوته پته ده زه ولې په خنداشوم؟موږاوونیل دالله رسول ته ښه پته ده وئی فرمائیل چه بنده به دخپل رب سره دقیامت په ورځ جهګړه کوی،هغه ته به وائی چه الله تعالی تازه دظلم نه نه ووم بچ کړې؟الله تعالی به فرمائی او، نوبیابه دې وائی چه زه به دخان خلاف دګواه ګواهی نه منم.اوزمابدن زما خپل دې،نوټول خلق زمادښمنان دی.الله تعالی به فرمائی هم دغه شان صحیح ده.ته په خپله ګواه شه، او زما بزرګانې فرښتې دې ګواه نه وی.نوهغه وخت به په ژبه باندې مهراولږی،اودبدن اعضاء ته به اوونیلې شی،وایئ:ته خپله ګواهی ورکړه چه تانه دې څه څه کارونه اخستلی دی؟هغه به هره یوه خبره صفاصفااورښتیاښتیااووائی.بیابه دهغه ژبه ازاده کړې شی نودې به دبدن جوړونواواعضاء ته اووائی چه تاسوغرق شئ،هم تاسوزمادښمنان شوئ، ماخو ستاسو د بچ کولوکوشش کوو، او د ستاسو د خاندې دپاره مې بحث کولو.(نسائی وغیره) (۱)دنسائی په یو بل حدیث کښې دی چه ته به دالله تعالی مخکښې رااوغوښتې شې.اوژبه به دې بندوی.د تولونه مخکښې به دپنډواولاسونونه تپوس اوکړې شي،(۲)دقیامت په باره کښې یولوې حدیث دې چه په دریم خل به بیادوی ته اوونیلې شی،چه تاسوڅه کړی دی؟دوی به وائی چه دستابنده یم، تا باندې،ستاپه نبی ﷺ باندې،ستاپه کتاب مې ایمان راوړلې وو،دروژې،مونځ،زکوة وغیره پابند ووم. نورې به هم نیکیانې بیان کړی.هغه وخت به ده ته اوونیلې شی چه صبراوکړه موږګواه راغواړو.دې به سوچ کوی چه څوک به په ګواهئ کښې پیش کوی.یوناځاپه به دهغه خوله بند کړې شی،اودهغه پنډئ ته به اوونیلې شی چه ته ګواهی ورکړه،اوس به پنډئ هډوکی

(۱) صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمومن وجنة للکافر : ۲۹۶۹، السنن الکبری للنسائی :۱۱۶۵۳.

(۲) السنن الکبری :۱۱۴۶۹، احمد:۵/۵. وسنده حسن شعب الایمان :۹۰۵۸.

او غوبنه خبرې کول شروع کړي اودهغه منافق دنفاق باره کښې اودهغه پټې خبرې به ښکاره کړي. داهرڅه به ددې دپاره وي چه بياپکښې څه بحث پاتې نشي.اودهغه عذرختم شي.الله تعالى دهغه نه به خفه وي په دې وجه باندې دومره سختئ سره ترې تپوس اوشي.(ابوداود)([1])

**قيامت کښې به مؤمن د ګناهونو اعتراف کوي او کافران به انکار کوي:** په يوبل حديث کښې دي چه په خوله باندې مهرلږيدونه پس به دټولونه مخکښې دانسان ښې پنډې خبرې کول شروع کړي([2]).حضرت ابوموسى اشعري رضي الله عنه فرمائي چه دقيامت په ورځ به الله تعالى مومنان رااوغواړي اود هغوى ګناهونه به دهغوى مخکښې پيش کړي،اوبه فرمائي داتهيك دي؟دوى به اوواني او الله بې شکه داټول صحيح دي اومانه داغلطيانې شوې دي.الله تعالى به اوفرمائي ښه،ماټولې معاف کړې.خوداخبرې به داسې وي چه چاته به.هم ددې باره کښې معلومات نه وي.دهغه يوه ګناه به هم په مخلوق کښې چاته معلومه نشي.اوس به دهغه نيکيانې راوړې شي اوهغه به ټول مخلوق ته اوخودلې شي.

کافران اومنافقان به رااوغوښتلې شي،دهغوى بدعملونه به دهغوى مخکښې کيخودلې شي،اوهغوى ته به اووئيلې شي وايئ داتهيك دي،دوى په صفاانکاراوکړي اوقسمونه به خوري اې الله د ستا فرښتو غلط ليکل کړي دي،مادا ګناهونه بالکل نه دي کړې،فرښته به وائي داڅه وائې؟فلانکې ځانې کښې تا دا فلانکې کارنه ووکړې؟دې به وائي الله دستاپه عزت مې قسم چه دادروغ دي مادابالکل نه دي کړې.اوس به الله دهغه ژبه بندکړي،دټولونه مخکښې به دهغه ښې پنډې ګواهي ورکړي.هم دامضمون په دې ايت کښې بيانيږي.بيافرمائي که مونږغوښتل نوهغوى به موګمراه کړې وې،اودوى ته به بياچرې هم هدايت نه وملاوشوې،که مونږغوښتلې ددوى سترګې به مورندې کړې وې،نودوى به هم دغه شان ګرځيدل.اخوا ديخوا به ګرځيدل اوربښتونې لاربه ورته نه وه معلومه.اوکه مونږغوښتل نودوى به مويخپل کورونوکښې ختم کړې وې.ددوى شکلونه به مويدل کړي وو،دوى به موهلاك کړې وو،ددوى خپې به موماتې کړې وې،بيابه دوى ګرځيدې نه شول.يعني نه به مخکښې تلې شول اونه به روستوراتلې شول.اودبت په شان به يوځانې ناست وو.مخکښې روستويه نه شوتلې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | وَمَنْ | نُّعَمِّرْهُ | |
| | او هغه څوك | چې اوږد عمر ورکوو مونږ هغه ته | | |
| | | اومونږ چې دچا عمر زيات کړو | | |
| نُنَكِّسْهُ | فِي الْخَلْقِ | اَفَلَا يَعْقِلُوْنَ | وَمَا عَلَّمْنٰهُ | |
| نوالټا کووه مونږ هغه لره | په جوړښت کښې | ايا پس دوئ نه کوي عقل | اونه دې ښودلې مونږ ده ته | |
| نو (دعمر په لحاظ سره) راټيټ ئې کړو | نوايا دوئ نه پوهيږي | او مونږ دې پيغمبر ته نه شاعري خودلې ده | | |
| الشِّعْرَ | وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ | اِنْ هُوَ | اِلَّا ذِكْرٌ | وَّقُرْاٰنٌ مُّبِيْنٌ |
| شعر | اونه ښائي ده لره | نه دي دا | مګر يو نصيحت دي | او قران دي واضحه |
| اونه دده شان سره مناسب نه | دا کلام خو (يوزبردست نصيحت) اوروښانه قران دي | | | |

[1]) صحيح مسلم كتاب الزهد باب الدنيا سجن للمومن وجنة للكافر:۲۹۶۸. ابن حبان:۴۷۲۶.

[2]) احمد:۱۵۱/۴،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِّيُنْذِرَ | مَنْ | كَانَ | حَيًّا | وَّيَحِقَّ | الْقَوْلُ |
| دپاره ددې چې اوېروي | هغه څوك | چې وي | ژوندې | اوثابته شي | اخبره (دعذاب) |
| چې هغه كسان ويروي \| دچا زړونه چې ژوندي دي \| او چې په كافرانو باندې حجت | | | | | |
| عَلَى الْكٰفِرِيْنَ۝ | | | | | |
| په كافرانو باندې | | | | | |
| پوره شي | | | | | |

قوله‌تعالى:: وَمَنْ نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ ؕ

څوانئ اوبوډه والئ: دانسان څوانى چه روروختميږى،پيرى،ضعيفى اوكمزورى پرې راځى.څنګه چه په سوره روم كښى دى اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ ضُعْفٍ الله تعالى هغه دې چه هغه تاسو دكمزورئ په حالت كښى پيدا كړې، بيائې دكمزورئ نه پس طاقت دركړو،بيائې دطاقت نه پس بوډاوالې اوكمزورې دركړه. هغه چه څه غواړى پيداكړى اوهغه ته دهرڅه پته ده اوقدرت والادې.

په دې ايت كښى دى چه په تاسوكښى څه ته زيات عمرورکړې شى چه دعلم نه پس هغوى بې علمه شى.نوددې ايت مطلب دادې چه دنيادختميدواومړكيدوځائى دې،دا د ارام ځائې نه دې.بياهم داخلق عقل نه لرى،چه په خپل ماشوموالى،بياځوانئ اوبياپه بوډاوالى غوراوكړى.اونتيجه اوباسى چه ددې دنيانه پس اخرت راروان دې،اوددې دنيادژوندنه پس به بل ژوندكښى بياپيداكيدل وى.بيائى اوفرمائيل چه نه خومونږخپل پيغمبرته شاعرى خودلې ده،نه شاعرى دهغه شان سره ښائى،نه ئى د شعرونو سره دهغه مينه اونه ې دشعرونوسره طبيعت لګى،ددې ثبوت دحضورﷺ په ژوندكښى ډير واضحه ملاويږى چه حضورﷺ به دچاشعرونه وئيل نوصحيح به ئى نه شوونيلې پوره به ورته نه وو ياد.

حضرت شعبىؒ فرمائى چه دعبدالمطلب په اولادكښى هركس شعرونه وئيلى شوخوحضورﷺ شعرونه بالكل نه شوونيلې.(ابن عساكر)

يوځل حضورﷺ داشعراووئيلو "كفى بالاسلام والشيب للمرء ناهيا"، په دې حضرت ابوبكرصديقؓ اوفرمائيل ،حضور!داداسې نه دې،بلكه داسې دې."كفى الشيب والاسلام للمرء ناهيا". بياهم حضرت ابوبكرؓياحضرت عمرؓ اوفرمائيل.تاسوبه رښتيادالله تعالى رسول يې.الله تعالى صحيح فرمائيلى دى.(وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِیْ لَهٗ ؕ) (ابى حاتم)[1]

په دلائل النبوة للبيهقى كښى دى چه حضورﷺ يوځل عباس ابن مرداس سلمىؓ ته اوفرمائيل تا دا شعرونيلې دې.

"اتجعل نهبى ونهب العبيد بين الاقرع وعيينه"، هغه اووئيل حضوردا په اصل كښى داسې دې."بين عيينة والاقرع" حضورﷺ اوفرمائيل بس ټول برابردى،مطلب كښى فرق نه راځى."صلوات الله وسلامة عليه، سهيلىؒ په روض الانف كښى ددې تقديم تاخير يوه عجيبه وجه بيان كړې ده،هغه وائى حضورﷺ "اقرع" مخكښى او"عيينه" روستوځكه بيان كړه چه "عيينه" دصديقؓ په خلافت كښى مرتدشوې وو،اواقرع ثابت قدم وو،([2])والله اعلم.

---

[1]) الطبقات: ۳۸۲/۱.

[2]) الدلائل : ۱۷۹/۵..

مغازي اموي كښي دي چه دبدرپه قتل كړې شوې كافرانوكښې حضورﷺ دګشت په وخت كښې دژبې نه دااوتل:"نفلق هاما"، نورځه ئې اونه وئيلې شو.په دې باندې جناب ابوبكرصديق﷛ پوره شعراوفرمائيلو.

من رجال اعزة علينا وهم كانوا اعق واظلما(١)

دا د چاعربي شاعرشعردې چه په حماسه كښې موجوددې.په مسنداحمدكښې دي چه رسول اللهﷺ به كله كله دطرفه شعروئيلو."ويأتيك بالاخبارمن لم تزود"(٢)ددې رومبې مصرعه داده ."ستبدي لك الايام ماكنت جاهلا"يعنې زمانه به تاته هغه څه اوښائي چه دهغې نه ته بې خبره وې،اوتاته به داسې كس خبرونه راوړې چه هغه ته تاتوښه نه ده وركړې.دحضرت عائشه﷞ نه چاتپوس اوكړوچه حضورﷺ به شعرونه وئيل ؟هغې ورته اووئيل چه دټولونه ناخوښه دحضورﷺ شعرونه وو.اوكله كله به ئې دبنوقيس والاځه شعراووئيلو.خوپه هغې به ئې هم غلطي كوله. حضرت ابوبكر﷛ به فرمائيل حضورداسې بلكه داسې،نوحضورﷺ به اوفرمائيل زه څه شاعرنه يم اونه شعرماسره ښائي.(ابن ابي حاتم) (٣)

په بل روايت كښې دشعردمخكښې روستوئيلوذكردي.يعنې **وياتيک بالاخبارمن لم تزود**،، حضورﷺ داسې **من لم تزودبالاخبار**،وئيلې وو.بيهقي كښې روايت دې چه حضورﷺ پوره شعركله هم نه دې وئيلې،زيات نه زيات يوه مصرعه به ئې اووئيله.(٤) په صحيح حديث كښې دي چه حضورﷺ دخندق كنستلوپه وخت كښې دحضرت عبدالله بن رواحه﷛ شعرونه وئيلې وو.خودايادساتل پكاردي چه داوئيل صرف دصحابه كرامو﷡ سره وو.هغه اشعار دادي .

لاهم لولاانت مااهتدينا ولا تصدقنا ولاصلينا
فانزلن سكينة علينا وثبت الاقدام ان لاقينا
ان الاولى قدبغوعلينا اذااراد وفتنة ابينا

نبي عليه السلام به دالفظ راښكلې وئيلې اودې سره سره به ئې په اوچت آواز وئيلې.(٥)

ددې شعرونه ترجمه داده.

هيڅ غم نشته كه ته نه وې نومونږته به هدايت نه وو شوې،نه به موصدقه وركولهٔ اونه به مومونځونه كول.اوس خوپه مونږباندې سكون نازل كړه.اوچه كله ددښمنانانوسره جهګړه شروع شي نومونږثابت قدم اوساته.هم داخلق په مونږباندې سركشي كوي،اوچه دوى كله دڅه فتنې اراده اوكړي نومونږ انكار كوو. هم دغه شان ثابت يوځنګه چه حضورﷺ دحنين په ورځ باندې دښمنانوطرف ته خپله خچروړاندې كولو وخت كښې فرمائيلې وو.

اناالنبي لاكذب انا ابن عبدالمطلب(٦)

.ددې باره كښې دايادساتل پكاردي چه اتفاقا يوكلام دحضورﷺ دژبې مباركې نه اداشوچه هغه دشعرپه وزن باندې پوره وو،حضورﷺ داپه قصد دشعرپه شان نه ووئيلې.

حضرت جندب بن عبدالله﷛ فرمائي چه مونږدرسول اللهﷺ سره په يوغاركښې وو،چه دحضورﷺ ګوته مباركه زخمي شوه.نوحضورﷺ اوفرمائيل.

هل انت الااصبع دميت وفي سبيل الله مالقيت

---

(١) حافظ ابن كثير دا روايت دتفسير نه علاوه السيرة النبوية :٤٤٩/٢ ،البداية والنهاية:٣٥٧/٣ كښې بلاسند ذكر كړېدې.
(٢) احمد:٣١/٦، السنن الكبرى: ١٠٨٣٣،.
(٣) الطبرى : ٥٤٩/٢٠.
(٤) بيهقي : ٤٣/٧،.
(٥)صحيح بخارى كتاب المغازى باب غزوة الخندق: ٤١٠٤، صحيح مسلم: ١٨٠٣، احمد:٢٨٢١٤. السنن الكبرى: ١٠٣٦٧.
(٦)صحيح بخارى كتاب المغازى :٢٥١١، باب قول الله تعالى(( ويوم حنين اذ اعجبتكم كثرتكم)) :٤٣١٥.

يعني ته خويره ګوته ې چه دالله په لاركښي زخمي شوې اوهغه په اتفاق سره قصدانه(١).هم دغه شان ديوحديث "الااللمم" په تفسيركښي به راخى چه حضورﷺ فرمانيلي دى.

ان تغفر اللهم تغفر جما وأي عبدلك لاالما

يعني اې الله چه ته كله معاف كوې نوزمونږټول ګناهونه معاف كړه،ګني داسې څوك ستا بنده هم نشته چه هغه دوړوړوګناهونه پاك وى.نوداټول ددې ايت خلاف دي،ځكه چه دالله تعالى تعليم حضورﷺ ته شعرونيلونه وو،بلكه الله تعالى خوحضورﷺ ته دقران كريم تعليم وركړو،چه دهغې خواه ته باطل نشي ورتلي.دقران كريم داپاك نظم دشاعرئ نه په ميلونولرې وو،هم دغه شان دد كهانت نه اودخان نه ونيلي شوو،اوجادودخبرونه هم،ځنكه چه به داكافرانومختلف خلقومختلف خبرې كولې.دحضورﷺ طبيعت خود دې صناعتونو نه معصوم وو،په ابوداؤدكښي دى چه حضورﷺ فرمانيلي دى زمادپاره دادرې خبرې برابردى،ترياق څكل،تعويذاچول،اوشعرونيل،(٢)حضرت صديقه ؓ فرماني چه شعرونيلونه دحضورﷺ نفرت وو(٣)،په دعاكښي به ې مكمل الفاظ خوښ وو،اوددې نه سوابه ې پريخودل(٤).(احمد) ابوداؤدكښي دى چه دچاخيته دپيپ نه ډكيدل دهغه پاره دشعرونودډكيدونه ښې دى. (٥) (ابوداؤد) دمسنداحمد په يوغريب حديث كښي دى،"چه چادماسخوتن دمونځ نه دشعريوه مصرعه هم جوړه كړه دهغه دشپې ټول مونځ ناقبوله شو(٦)."داياداساتل پكاردى چه دشعرونيلوډيرقسمونه دى، د مشركانو خلاف شروع ونيل په شريعت كښي شته.حضرت كعب بن مالك،حضرت عبدالله بن رواحه وغيره په شان لويوصحابه كرامو ؓ دكافرانوخلاف شعرونه ونيلي دى.

څه شعرونه دنصيحت،ادب اوحكمت دپاره وى،لكه دجاهليت دوخت دڅه شاعرانوپه كلام كښي داسې شعرونه شته،داميه بن صلت دشعرونوباره كښي دحضورﷺ فرمان دې،چه دهغه شعرونو خوايمان راوړې دې،خودهغه زړه كافردي.(٧)يوصحابي ؓ حضورﷺ ته اميه سل شعرونه اوونيل، دهر شعرنه پس به حضورﷺ فرمائيل نوروايه (٨).په ابوداؤدكښي دحضورﷺ ارشاددې،چه څه بيانونه د جادو په شان وى،اوڅه شعرونه بالكل حكمت وى(٩).نوفرمانيلي دى چه څه مونږهغوى ته اوخودل هغه ذكر او نصيحت اوواضح اوصفاقران دې.كه يوكس لږشان هم غوراوكړي نوهغه ته به دانبكاره شي چه دزمكې دپاسه څومره خلق دى دابه هغوى ټولوته خبراوويره وركړي.ځنكه چه ارشادفرمانيلي دي.﴿ لِأُنذِرَكُم بِهِۦ وَمَنۢ بَلَغَ ﴾ چه مونږتاسويه دې سره ويروو او چه دااورسي.اوپه آيت كښي دى.﴿وَمَن يَكْفُرْ بِهِۦ مِنَ ٱلْأَحْزَابِ فَٱلنَّارُ مَوْعِدُهُۥ﴾ يعني په په دې ټولوكښي چه څوك هم دانه منى هغه ته سزااودوزخ دې،اوددې قران اوحضورﷺ د فرمان نه هغه كس اثراخلى چه دهغه زړه ژوندې اوصفاوى،عقل اونظرلرى اودعذاب قول خويه كافرانو باندې سخت دې.نوقران په مومنانوباندې رحمت اوكافرانوباندې سخت دې.

---

(١)صحيح بخارى كتاب الادب باب مايجوز من الشعر والرجز والحداء وما يكره منه:٦١٤٦، صحيح مسلم: ١٧٩٦. ترمذى: ٣٣٤٥.

(٢) ابوداود كتاب الطب باب فى الترياق : ٧٧٦، مسندابى يعلى :١٥٣٣، ، بيهقى: ٣٥٥/٩.

(٣) احمد:١٣٤/٦، وسنده صحيح.

(٤) ابوداود كتاب الوتر باب الدعاء :١٤٧٢، وسنده صحيح احمد:١٨٩/٦. ابن حبان:٨٦٤.

(٥) ابوداود كتاب الادب باب ماجاء فى الشعر:٥٠٠٩، وهو صحيح.

(٦) احمد:١٢٥/٤، مسندالبزار: ٢٠٩٤.

(٧) الجامع الصغير للسيوطى

(٨) صحيح مسلم كتاب الشعر باب فى انشادالاشعار وبيان اشعر الكلمة:٢٢٥٥.

(٩) ابوداود كتاب الادب باب ماجاء فى الشعر:٥٠١٠، وهوعندالبخارى:٦١٤٥.

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ
آيا نه ويني دا خلق | چې بيشكه پيدا كړل مونږ | دپاره ددوئ
آيا دا خلق دې ته نه ګوري | چې مونږ ورله په خپل لاس باندې د جوړ كړو

مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ﴿٧١﴾
دهغې نه | چه جوړ كړي دي | لاسونو زمونږ | خاوري | پس دوي | هغې لره | مالكان دي
څيزونو نه څاروي پيدا كړي دي |.............................. نو دوئ دهغې مالكان شول

وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوْبُهُمْ وَمِنْهَا
اوتابع كړي دي مونږ دغه څاروي| دپاره ددوئ |پس څيني دهغې نه|سورلۍ ددوئ دي|اوڅيني دهغې نه
او(بيا) مونږ دغه څاروي ددوئ دحكم تابع كړل| نو په بعضو باندې سورلۍ كوي | او د بعضو نه

يَاْكُلُوْنَ﴿٧٢﴾ وَلَهُمْ فِيْهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ ؕ اَفَلَا
خوري دوئ| او دپاره ددوئ| په هغې كښې| فائدې |اود څكلو څيزونه دي | نوآيا
.خوراك كوي |او په دغه څارو كښې دوي دپاره نورې ډيرې فائدې دي |اود څكلو څيزونه دي| نو آيادوئ بيا هم

يَشْكُرُوْنَ﴿٧٣﴾ وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً لَّعَلَّهُمْ
دوي شكر نه اوباسي| او نيولي دي دوي | ماسوا دالله نه | خدايان | دپاره ددې چه دوي سره
شكر نه اوباسي| او دوئ دالله نه بغير څانله معبودان په دې اميد جوړ كړي دي| چې امداد به ورسره اوكړې

يُنْصَرُوْنَ﴿٧٤﴾ؕ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ نَصْرَهُمْ ۙ وَهُمْ لَهُمْ جُنْدٌ
امداداوكړې شي | طاقت نه لري دوئ| دامداد ددوئ| بلكه داخلق| دپاره دهغوئ| لښكردي
شي | دغه معبودان ددوئ هيڅ مدد نشي كولې(بلكه) دغه څيزونه به ددې كافرانو په مقابله كښې

مُّحْضَرُوْنَ﴿٧٥﴾ فَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ اِنَّا نَعْلَمُ مَا
حاضر اوسيدونكي| پس غمژن دې نه كړي تا| خبرې ددوئ| بيشكه مونږ پوهيږو | په هغې
د لښكر(دشمن) په شان پيش كړې شي | نوته ددوئ په خبرو خفګان مه كوه |مونږ ته هر څه معلوم دي

يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ﴿٧٦﴾
چه دوي ئې پټوي |اوپه هغې| چه دوئ ئې ښكاره كوي |
كوم چې دوئ په زړونو كښې پټ ساتي| او كوم چې ښكاره كوي|

**قوله تعالى:: اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ**

**دڅناورو پيدائش او تابع كول دالله ﷻ په بندګانو باندې انعام::** الله تعالى دخپل انعام اواحسان ذكركوي، چه هغه پخپله دادڅلوروخپووالاپيداكړي دي اودانسان په ملكيت كښې ئې وركړي دي.يووړوكې شان ماشوم هم چه كله داوښ پيزوان اونيسي،نوداوښ په شان لوې اوطاقت ورڅناردهغه سره وي. دسلو اوښانو قطار ديو ماشوم سره سيده روان وي.دهغه په ماتحتۍ كښې بعضې دمشقت والاكارونه زرزراوپه اسانتياسره كوي.پخپله پرې سوريږي،سامان پرې اوړي،اوبوجه پرې اوړي.اودبعضوغوښې

خوری. وینبتو او خرمنو وغیره نه هم فائده اخلی. پیئ نی ځکی،اودعلاج دپاره نی متیازې په کارراخی،اونورئ فائدې ترې هم حاصلوی.نوبیادوی ته نه دی پکارچه ددې نعتمونوورکولووالا،ددې احسانونوکولووالا،ددې ځیزونوپیدا کونکې، ددې دحقیقی مالك شكراداكړی؟صرف دهغه عبادت اوکړی،دهغه توحیداومنی اودهغه سره څوك شريك نه کړی.

**قوله تعالی:: وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً**

**الله تعالی هر څه کوی او ددوئ معبودان هیڅ نشی کولې** دمشرکانوددې غلطې عقیدې انکارکیږی چه هغوی ګڼړی چه دچاهغوی دالله تعالی نه سواعبادت کوی،هغوی ددوی مددکوی.دهغوی په روزئ کښی برکت اچوی اوالله تعالی ته نی نزدې کوی.الله تعالی فرمائی چه هغوی ددوی مددنشی کولې.ددوی مددخوڅه هغوئ خپل مددهم نشی کولې.اودابتان خوددښمن دنقصان نه خپل خان هم نشی ساتلې.که څوك راشی اومات رامات نی کړی نودوی دهغوی څه نشی کولې.بلکه دوی خبرې هم نشی کولې،عقل پکښی نشته،دابتان به دقیامت په ورځ جمع شوی حساب په وخت دخان ته عبادت کونکوپه مخکښی په لاچارئ اوبې کسئ سره موجودوی.چه مشرکان پوره ذلیله شی اوپه هغوی باندې خبرې اوشی.حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه مطلب دادې چه دابتان خودهغوی هیڅ قسمه امدادنشی کولې،خوبیاهم دابې عقله مشرکان دهغوی مخکښی داسې پراته وی،لکه چه څوك حاضروی،هغوی ته څه فائده نشی رسولې،اونه ترې څه نقصان لرې کولې شی.خودوی دی چه دهغوی په نوم باندې مړه کیږی.تردې چه دهغوی خلاف خبرې هم اوریدل نه غواړی.اوپه غصه کښی بې قابوشی.اې نبی ﷺ ددې کافرانوپه خبروباندې تاسومه خفه کیږئ،مونږته ددوی ظاهراوباطن ښکاره دې.وخت راروان دې چه مونږبه دوی ته دهریوځیز بدله ورکړو.

| |
|---|
| اَوَلَمْ يَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ |
| ایا نه ګوری انسان \| چه بیشکه پیدا کړومونږ دې |
| ایا انسان دې ته نه ګوری چې مونږ |
| مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ۝ وَضَرَبَ لَنَا |
| دنطفې نه \| پس اوس دادې هغه \| جګړه کوونکې دې \| ښکاره \| اوبیانوی هغه \| دپاره زمونږ |
| دې دیوڅاڅکی نه پیدا کړو ابیا دې په ښکاره ،دخپل رب په باره کښې، جګړه کوی\|اودې زمونږ په باره کښې |
| مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهٗ ؕ قَالَ مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيْمٌ۝ |
| مثال\| او هیروی \| پیدانش خپل\| وانی \| څوک به ژوندې کوی \| داهډوکی \| اوحال دادې چه وراسته دی |
| مثالونه بیانوی\|اوخپل حقیقت نې هیرکړو\| وائی چې څوک به هډوکی رازوندی کړی\| څه وخت چې هغه به زاړه شوی دی |
| قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ اَنْشَاَهَآ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ وَهُوَ |
| ورته اووایه\| ژوندی کوی به دې لره \| هغه ذات\| چه پیدا کړی وو هغه \| اول خل \| حال دادې چه هغه |
| انې نبی ﷺ ته جواب ورکړه\| چې هغه ذات به نې رازوندی کوی\| چاچې په اول خل پیدا کړی دی |
| بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمُ ۙ۝ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ |
| په هرپیدانش باندې\| ښه پوهه دې\| هغه ذات چه پیدانې کړو\| ستاسو دپاره \| د ونې شنې نه \| |
| او هغه په هر قسم پیدانش ښه پوهه دې \|هغه داسې ذات دې چې تاسو دپاره نې د شنو ونو نه اور پیدا کړې دې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نَارًا | فَاِذَآ اَنۡتُمۡ | مِّنۡهُ | تُوۡقِدُوۡنَ ﴿۸۰﴾ | |
| اوور | پس اوس تاسو | دهغې نه | اوور بلوئ | |

نوبیا دهغې نه تاسو نور اورونه بلوئی

**قوله‌تعالی:: اَوَلَمۡ يَرَ الۡاِنۡسَانُ**

**چاچه مخکښې پیداکړل هغه مړی هم ژوندی کولې شی:** ابی بن خلف ملعون یوځل په خپل لاس کښی یوزوړ او سخا شوې دننه نه خالی هډوکې راوړواوپه لاس کښی ی هغه اومړلوچه دهغې ټکړې په هواکښی الوتلې نوحضورﷺ ته ې اووئیل.چه تاسووائی چه داهډوکی به الله تعالی ژوندی کوی؟ حضورﷺ اوفرمائیل او،الله تعالی به تاهلاك کړی اوبیابه دې ژوندې کړی،بیابه تاجهنم طرف ته اولیږی.په دې موقع باندې ددې سورت اخری ایتونه نازل شول.(۱)اوپه روایت کښی دې چه اعتراض کولووالاعاص بن وائل وو.اوددې ایت نه تردسورت داخرې پورې ایتونه نازل شول(۲).اوبه روایت کښی دی چه داواقعه دعبدالله بن ابی نه شوې وه. خولړشان غورغواړی.ځکه چه دامکی سورة دې،اوعبدالله بن ابی خوپه مدینه کښی وو.بهرحال که دایتونه دابی په سوال باندې نازل شوی وی یادعاص په سوال باندې،عام دی.په لفظ انسان باندې چه الف لام دې هغه جنس دې.کوم کس چه هم ددویم ځل دژوندمنکردې،دهغه دپاره جواب دې.مطلب داچه هغه خلقوته پکاردی چه پخپل پیدائش باندې غوراوکړی.چه هغه دیوې څخه قطرې نه انسان پیداکړواوددې نه مخکښی هغه هیڅ هم نه وو.بیادهغه قدرتونه نه منل څه معنی لری؟دامضمون په نوروډیروایتونوکښی هم بیان شوې دې.لکه په ﴿ اَلَمۡ نَخۡلُقۡكُّمۡ مِّنۡ مَّآءٍ مَّهِيۡنٍ ﴿۲۰﴾ فَجَعَلۡنٰهُ فِىۡ قَرَارٍ مَّكِيۡنٍ ﴿۲۱﴾﴾ اولکه ﴿ اِنَّا خَلَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ مِنۡ نُّطۡفَةٍ اَمۡشَاجٍ ﴿۲﴾﴾

**ابن ادم ته دالله ﷻ خطاب::** مسنداحمدکښی دی چه یوځل حضورﷺ په خپل لاس کښی لاړې اوتوکلې اوبیانی اوفرمائیل چه الله تعالی فرمائی چه اې د ادم اولاده، تاسوماعاجزه کولې شئ؟ماتاسوددامې څیزنه پیداکړئ.چه بیامې کله جوړاوتهیك تکړه کړئ نوتاسوکښی تکبرپیداشواوتاسومال جمع کول اودغریبانانونه مولرې اوسیدل شروع کړل. او چه کله موساه وتله نوبیامووئیل چه زه به اوس خپل ټول مال دالله په لارکښی صدقه کړم،خوبیا دصدقې وخت چرته دې.(۳) یعنې دنطفې نه پیداشوې انسان خبرې شروع کړې اوبه دویم ځل باندې پیدا کیدل نې نه منل.دهغه الله تعالی دقدرت نه سترګې واړولې چه هغه زمکه اسمان اوټول مخلوق پیداکړو.خوددوی دعقل په سترګوخوچتی ناست دی.ددې په جواب کښی ورته اووایه چه ړومبی ځل داهډوکی چه اوس خراب شوی دی چه چاپیداکړی ووهغه به نی بیاهم پیداکړی.کوم کوم ځاني کښی چه داهډوکی دی هغه ته ښه معلوم دی.

**دپخوا زمانې د یوسړی د تعجب واقعه::** دمسندپه حدیث کښی دی چه یوځل حضرت حذیفهؓ ته حضرت عقبه بن عمرواووئیل چه مونږته درسول اللهﷺ نه اوریدلې حدیث بیان کړه.نوهغه ورته اوفرمائیل چه حضورﷺ فرمائیلی دی چه یوکس دمرګ په حالت کښی خپل وارثانوته وصیت اوکړو چه زه چه کله مړشم نولرګی راټول کړئ اوما اوسیزئ ،اوبیاهغه ایرې په سمندرکښی لاهوکړئ،نوهغوی هم هغه شان اوکړل.الله تعالی دهغه ایرې راجمع کړې هغه نی بیاژوندې کړواوتپوس ئی ترې اوکړوتاداسې ولې اوکړل؟هغه جواب ورکړوچه صرف دستادویرې.الله تعالی هغه اوبخلو.حضرت حذیفهؓ فرمائی چه

(۱) الطبری : ۲۰/۵٥٤.
(۲) الطبری : ۲۰/۵٥٤.
(۳) احمد:٤/۲۱۰، ابن ماجه: کتاب الوصایا باب النهی عن الامساک فی الحیاة والتبذیر عندالموت:۲۷۰۷. وسنده صحیح.

حضورﷺ په لاربانديې په روانه داحديث بيان كړوچه مادهغوى دډيې مباركې نه په خپلوغوږونواوريدلې دي.(۱) داحديث په صحيح مسلم او بخاری كښې په ډيروالفاظوسره روايت شوي دي.

په يوبل روايت كښې دي چه هغه سړي اووئيل چه زما يره دهواطرف ته والوخوئ،څه په هواكښې اوڅه په درياب كښې لاهوكړئ.سمندركښې چه څومره ايره وه هغه نې دالله په حكم راجمع كړه،هم دغه شان هواهم اوكړل. اوبياهغه دالله په حكم سره ژوندې شو.الخ.(۲)

**قوله تعالى:: اَلَّذِيۡ جَعَلَ لَكُمۡ مِّنَ الشَّجَرِ الۡاَخۡضَرِ نَارًا**

**دالله تعالى دقدرت مشاهده:** بيادخپل قدرت خودنې دپاره اوددې خبرې دليل وركولودپاره چه الله تعالى په هريوڅيزباندې قدرت لرونكې دې اومړې واپس ژوندی كولې شی جداڅيزونه په يوقالب كښې جمع كولې شي،وئې فرمائيل چه تاسوغوراوكړئ چه په اوبوماونې پيداكړې چه هغه شنې دی اوميوې كوی.بياهغه اوچې شوې اودهغې دلرګونه مااورويستلو،چرته ددې هغه يخ والې اوچرته داګرمی.نوماته څه كول ګران نه دي.لوانده اوچول اواوچ لوندول، ژوندې مړه كول اومړو ته زندګې وركول زماپه قدرت كښې دی.داهم وئيلې شوی چه ددې نه مطلب د مرخ اوعفار ونې دی كومې چه په حجازكښې دی،ددې شنه خانبونه يوبل سره مړلوباندې دوی ته ډيرتيزئ سره اولګی.موږه عربوكښې يومثل مشهور دې، "لكل شجرنارواستمجدالمرخ والعفار" دحكمت والوقول دې چه د انګوردونې نه علاوه په هره ونه كښې اورشته.

| |
|---|
| اَوَلَيۡسَ الَّذِيۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ |
| ايا نه دي \| هغه ذات \| چه پيدائي كړل اسمانونه |
| ايا هغه الله ﷻ چا چي اسمانونه اوزمكه پيدا كړي دي |
| وَالۡاَرۡضَ بِقٰدِرٍ عَلٰۤى اَنۡ يَّخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ ؕ بَلٰى ۗ وَهُوَ الۡخَلّٰقُ |
| اوزمكه \| قدرت لرونكي \| په دې چه پيدا كړي \| مثل ددوى \| ولې نه لري \| اوهغه خوپيداكونكې دي |
| په دې كار قادر نه دي \| چي هغه به ددوئ پشان نور خلق پيدا كړي \| ولې نه \| ............ هغه |
| الۡعَلِيۡمُ ۝ اِنَّمَاۤ اَمۡرُهٗۤ اِذَاۤ اَرَادَ شَيۡـًٔا اَنۡ يَّقُوۡلَ لَهٗ |
| پوهه ماهر \| بيشكه حكم دهغه چه دي \| كله چه اراده اوكړي \| ديوڅيز \| دادې چه اووائي \| هغه څيزته |
| پيداكونكې اوپوهه دې \| د هغه شان دادې چي څه وخت هغه د يو څيز اراده اوكړي انو ورته وائي |
| كُنۡ فَيَكُوۡنُ ۝ فَسُبۡحٰنَ الَّذِيۡ بِيَدِهٖ مَلَكُوۡتُ |
| شه \| نو هغه شي \| پس پاكي ده هغه لره \| چه په لاس دهغه كښې \| بادشاهي \| |
| چي موجود شه \| نوهغه موجود شي \| نو دالله ﷻ دپاره پاكي ديه \| دچا په لاس كښې چې دهريو څيز |
| |
| كُلِّ شَيۡءٍ وَّاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ۝ |
| دهير څيزده \| اوخاص هغه ته به واپس كيږئ تاسو |
| پوره پوره اختيار دي \| اوتاسو ټول به هغه ته واپس ورځئ |

**قوله تعالى:: اَوَلَيۡسَ الَّذِيۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ**

---

(۱) احمد:۵/۳۹۵، صحيح بخاری كتاب احاديث الانبياء باب ماذكره عن بنى اسرائيل :۳۴۵۲.

(۲) صحيح بخاری كتاب الاحاديث الانبياء باب :۵۴ حديث رقم: ۳۴۷۹. صحيح مسلم:۲۷۵۷ عن ابي سعيد الخدری ﷺ.

**دزمکې اواسمان خالق ښخې اوسړي بیاپیداکولې شي:** الله تعالی خپل زبردست قدرت بیانوي چه هغه اسمانونه اوددې هریوخیزپیداکړو.زمکه اوپکښی دننه هریوخیزئې پیداکړو.بیادومره لوی قدرتونو والا، دانسان په شان وړوکې مخلوق نشی پیداکولې دادعقل نه خلاف خبره ده.څنګه چه فرمانیلی دی.﴿ لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ﴾ زمکه اواسمان پیداکول دانسان دپیداکولونه ډیرلوی اواهم دی.دلته ئې هم فرمانیلی دی چه هغه الله تعالی چاچه زمکه اواسمان پیداکړوهغه به دانسان په شان وړوکې مخلوق نشی پیداکولې؟اوچه هغه قدرت لرونکې دې نوهغه به یقینادمړکولونه پس بیاهغوی ته ژوندورکړی،چاچه په ړومبی ځل پیداکړل،هغه ته په دویم ځل پیداکول ډیراسان دی.څنګه چه په بل ایت کښی دی.﴿ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِیْ﴾ ولې هغوی نه ګوری چه کوم الله تعالی زمکه اواسمان پیداکړواوددې پیداکولوکښی ستړې نشو،نوهغه به مړی ژوندی نه کړي؟ بې شکه قدرت لري بلکه هغه خوپه هریوخیزباندې قدرت لرونکې دې.هغه پیداکونکې او جوړونکې دې،ایجادکولووالاوخالق دې.ددې سره هغه هوښیار،لیدونکې اودهریوخیزنه خبردې.هغه چه څه کول غواړی دهغه صرف حکم ورکول کافي دی.

**هر وخت د الله ﷺ نه معافي غوښتل پکار دي:**:دمسندپه حدیث قدسی کښی دی چه الله تعالی فرمانی.ائې زمابندګانواخوچه زه څوك معاف کوم، تاسومانه معافی غواړئ،زماوعده ده چه زه معاف کول کوم.تاسوټول فقیران یئ،خوچه زه چاته غواړم دولت ورکړم.زه جوادیم،ماجدیم،واجدیم،زه چه څه کول غواړم کوم.زماانعام هم یوحکم دې او زما عذاب هم یوحکم دې.زه چه کوم کارکول غواړم اووایم،اوشه اوهغه اوشی([1]).دهریوعیب نه پاك حی او قیوم ذات دی.چه هغه دزمکې اواسمان بادشاه دې،چه دهغه په لاس کښی دزمکې اواسمانونوچابیانې دی.هغه دټولو خالق دې اوهغه اصلی حاکم دې.دهغه طرف ته به دقیامت په ورځ ټول واپس کیږی اوهغه عادل اومنعم دې.الله تعالی به دوی ته سزااوجزاورکوی.بل ځائې کښی فرمان دې،الله تعالی پاك دې دچاپه لاس کښی چه دهریوخیزملکیت دې،اوپه ایت کښی دی څوك دې چه دهغه په لاس کښی دهریوخیزاختیاردې.اوفرمان دې.﴿ تَبٰرَكَ الَّذِیْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ﴾ بس دملك او ملکوت دواړویوه معنی ده.لکه رحمت اورحموت،رهب اورهبوت اوجبر او جبروت . بعضونیلی دی د ملك نه مراد دبدنونومالك اوملکوت نه مراددروحونومالك دې.خوصحیح خبره ړومبئ ده اوهم داقول دډیرومفسرینودې.

**قوله تعالی:**:فَسُبْحٰنَ الَّذِیْ بِيَدِهٖ

**دتهجدو دعاګانې:** حضرت حذیفة بن یمان ﷺ فرمانی چه یوه شپه زه دتهجدوپه مونځ کښی دحضور ﷺ په اقتداکښی اودریدم.حضور ﷺ اووه لوې لوې سورتونه(یعنی پاوکم لس سیپارې)په اوورکعتونوکښی اوونیلې سمع الله لمن حمده ونیلواورکوع نه سراوچتولونه پس به حضور ﷺ داونیل الحمدالله ذي الملکوت والجبروت والکبریاء والعظمة،بیادحضور ﷺ رکوع دقیام هومره وه.اوسجده به ئې درکوع هومره وه.زماحالت خوداسې شوچه خپې مې په ماتیدوشوې(ابوداوُدوغیره)([2])هم دغه حضرت حذیفه ﷺ نه روایت دې چه حضوراکرم ﷺ هغه دماسخوتن په مونځ باندې لیدلې وو،حضور ﷺ دې دعاونیلونه پس بیاقرات شروع کړو.الله اکبرالله اکبرذي الملکوت والجبروت والکبریاء والعظمة،بیائې ټول سوره بقره اوونیلونورکوع ئې اوکړه.په رکوع کښی ئې هم هغه هومره وخت واخستلواوسبحان ربي العظیم ئې ونیلو.بیائې درکوع نه سراوچت کړواوتقریباهغه هومره وخت ولاړوو.او لربی الحمد،ئې ونیل.بیا سجدې ته لاړوهغه هم تقریبادقیام

---

[1] احمد: ۱۷۷/۵. ترمذی:کتاب صفة القیامة: باب :۴۸رقم:۲۴۹۵.

[2] احمد:۳۸۸/۵.

برابروه.اوپه سجده کښی حضورﷺ: سبحان ربي الاعلي وئيل،بيائې دسجدې نه سراوچت کړو.دحضورﷺ عادت مبارک وو،چه ددواړوسجدومينځ کښی به دومره وخت کيناستو،څومره وخت چه به ئې په سجدوکښی اخستلو.اورب اغفرلي رب اغفرلي به ئې وئيل.حضورﷺ څلوررکعتونه اداکړل.
سوره بقره،سوره ال عمران،سوره نساء،اوسوره مائده ئې تلاوت کړل.حضرت شعبه رحمه الله ته شک دې چه سوره مائده ئې اولوستلواوکه سوره انعام؟په نسائی و غيره کښی دي(١) چه حضرت عوف بن مالک اشجعی رضي الله عنه نه روايت دی چه مايوه شپه دحضورﷺ سره دتهجدمونځ اوکړو.حضورﷺ دسوره بقره تلاوت اوکړو،په هرهغه ايت باندې کومې کښی چه درحمت ذکرشوې دې حضورﷺ به اودريدواودالله تعالی نه به ئې رحمت اوغوښتلو.اوپه هرهغه ايت باندې کوم کښی چه دعذاب ذکرشوې دې،حضورﷺ به اودريدواودالله نه به ئې پناه اوغوښتله.بياحضورﷺ رکوع اوکړه هغه هم دقيام نه کمه نه وه.اوپه رکوع کښی به ئې فرمائيل "سبحان ذي الجبروت والملكوت والكبرياء والعظمة"، بياحضورﷺ سجده اوکړه،هغه هم دقيام هومره وه اوپه سجده کښی ئې هم دغه فرمائيل،بيائې په دويم رکعت کښی سوره ال عمران اولوستلو،بيائې دغه شان يويوسورت ئې په يويورکعت کښی اولوستلو.(٢)

## تفسيرسورة الصافات

په نسائی کښی دی چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چه حضورﷺ به مونږته دسپک مونځ کولوحکم فرمائيلو،اوحضورﷺ به مونږته په سوره الصافات باندې مونځ راکولو.(٣)

| اياتونه | | | سورة الصّٰفّٰت مكية وهي مائة واثنتان وثمانون اٰية وخمس ركوعات | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ١٨٢ | | | شروع کوم په نوم د الله چه اَيرمهربان زيات رحم کونکيګ ديګ | | ٥ |

وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ۙ فَالزّٰجِرٰتِ

قسم دې په صف جوړونکو فرښتو باندې | په صف جوړولو سره | بيا په زورنه ورکونکو فرښتو باندې

قسم دې په هغه فرشتو چې په صفونو کښې په قطار ولاړ وی | او په هغه فرشتو چې

زَجْرًا ۙ فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا ۙ اِنَّ اِلٰهَكُمْ

په زورنه ورکولوسره|بياپه لوستونکوفرښتوباندې|کلام دنصيحت لره|چې بيشکه حقيقيی معبود ستاسو

(شيطانان) په کله رټی | او په هغه فرشتو چې دقران پاک تلاوت کوی | بيشکه ستاسو معبود

لَوَاحِدٌ ۗ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا

خامخا يو دې | چې رب داسمانونو | او دزمکې دې | او دهغې چې په منځ ددې دواړو کښی دی

يو دې | هغه داسمانونو اوزمکې اوددې په مينځ کښې چې څه دی د ټولو څيزونو رب دې

وَرَبُّ الْمَشَارِقِ ۗ

او رب دټولو مشرقونو دې |

اود نمر راختلو دځايونو رب دې |

١) ابوداود كتاب الصلاة باب مايقول الرجل في ركوعه وسجوده : ٨٧٤، وهوصحيح نسائی ١٠٧٠.
٢) ابوداود حواله سابق. وسنده صحيح.
٣) نسائی كتاب الامامة باب الرخصة الامام في التطويل : ٨٢٧، وسنده حسن.

**قوله‌تعالی:: وَالصّٰٓفّٰتِ**

**دفرشتوقسمونه اوددې قسمونه:** حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائي چه ددې درې قسمونو نه مراد فرښتې دي[1]. دنورزياتوحضراتوهم داقول دې.حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چه دفرښتوصفونه په اسمان کښې دي. [2] په مسلم کښې دي چه حضور ﷺ فرمائيلي دي.مونږ ته په ټولوخلقوباندې درې خبروسره فضيلت راکړې شوې دې.

① زمونږصفونه دفرښتودصفونوپه شان جوړکړې شوي دي.② زمونږدپاره ټوله زمکه جمات ګرځولې شوې دې.③ اواوبه نه ملاويدووخت کښې دزمکې خاوره زمونږدپاره داودس په ځائې کارکوي.[3] مسلم وغيره کښې دي چه يوځل حضور ﷺ مونږته اوفرمائيل تاسوهغه شان صفونه نه جوړوئ څنګه چه فرښتې الله تعالى ته صفونه جوړوي.مونږعرض اوکړوهغه څنګه؟حضور ﷺ اوفرمائيل مخکښې صفونه پوره کوي اوصفونه ديويل سره ملاوساتي.[4] دزجروالونه مراددسندي رحمه الله په نزدباندې وريځ ته د زجر حکمونه ورکول اويوخوا بل خوا ته تلووالافرښتې دي.

ربيع بن انس رضی الله عنه فرمائي قران مجيدچه دکوم ځيزنه منع کوي هغه هم ددې نه بندوي.ذکردالله تعالى تلاوت کولووالافرشتې هغه دي کومې چه دالله تعالى پيغام بندګانوته راوړي.څنګه چه فرمائي ﴿فَالْمُلْقِيٰتِ ذِكْرًا ۝ عُذْرًا اَوْ نُذْرًا ۝﴾ يعني دوحي وړولووالوفرښتوباندې قسم چه هغوى عذر غورځولو يا د خبرولودپاره دي.ددې قسمونونه پس چه په کوم ځيزونوباندې قسمونه خوړلې شوي دي دهغې ذکر راروان دې.چه دستاسوټولومعبودالله تعالى دې.هغه داسمانونواوزمکواوددې په مينځ کښې دهرڅه مالك دې. هغه په اسمان باندې نمرسپوږمې اوستوري اوځلول.چه هغه دمشرق نه راښکاره کيږي اوپه مغرب کښې ډوبيږي.دمشرق ذکرکول اودمغرب ذکرپريخودل دهغې دموجودتياباندې دلالت کوي.

په بل ايت کښې ذکرکړې هم دې.﴿رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ ۝﴾ يعني ديخنئ اوګرمئ،د راختلو او ډوبيدلو د ځائې رب هم هغه يودې.

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّا زَيَّنَّا | | السَّمَآءَ | الدُّنْيَا |
| بيشکه ښائيسته کړې دي مونږه | | آسمان | ددنيا |
| دا مونږ يو چې د دنيا آسمان مو په يو عجيبه رونق يعني | | | |
| بِزِينَةِ | الْكَوَاكِبِ ۝ | وَحِفْظًا | مِّنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ |
| په ښائيست دستورو سره | | او محفوظ کړې دي (مونږه دا آسمان) | دهر شيطان |
| ستورو ښائسته کړې دي | اودهر يو سرکش شيطان نه مو دهغې حفاظت کړې دي | | |
| مَّارِدٍ ۝ | لَا يَسَّمَّعُوْنَ | إِلَى الْمَلَإِ الْأَعْلٰى | وَيُقْذَفُوْنَ |
| سرکش نه | دا شيطانان نشي اينږودې غوږ | ملاء اعلى ته (ټولې پورته ته) | اوويشتلې کيږي |
| (شيطانان) (دفرښتو) د اوچت مجلس هيڅ خبره نشي آوريدلې | اودهر طرفنه ددوى دتښتولو دپاره | | |

[1] الطبرى :۲۱/۷.
[2] الطبرى :۲۱/۷.
[3] صحيح مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة: ۵۲۲.
[4] صحيح مسلم: کتاب الصلاة باب الامر بالسکون فى الصلاة والنهى عن الاشارة باليد: ٤۳۰.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ﴿۸﴾ | دُحُورًا | وَّلَهُمْ | عَذَابٌ وَّاصِبٌ ﴿۹﴾ | اِلَّا | |
| دهر طرفنه | دپاره دشړلو | او دي دپاره ددوئ | عذاب سخت (مسلسل) | مګر | |
| په دوئ سروتکي غورزولي شي \| اوددوئ دپاره د همیشوالی عذاب دي \| ..............البته | | | | | |
| مَنْ | خَطِفَ | الْخَطْفَةَ | فَاَتْبَعَهٗ | شِهَابٌ | ثَاقِبٌ ﴿۱۰﴾ |
| هغه (شیطان) | چي وي تښتوله | یوه خبره | نو وروسي شي په هغه پسي | یوه شغله | رڼا کونکی |
| که چا په کښي چرته یو نیم خبر اوتښتولو \| نو یو ګرمه خلنده شعله وروسي ورروانه شي | | | | | |

**قوله تعالی:: اِنَّا زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا**

**ستوري داسمان ښکلاده:** اسمان ته کتلوواﻻنظرته چه کوم خانست ورکړي شوي دي،دهغي دذکربیان دي. داداضافت سره ونیلي شوي دي،اودبدلیت سره هم،په دواړوحالتونوکښي یوشان دي.دهغه د ستورو،هغه دنمررڼازمکه اوړقوی،څنګه چه په یوبل ایت کښی دی.﴿وَزَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا﴾ مونږ زمکي اواسمان ته خانست ورکړو اودامو دشیطانانو دپاره دشیطانانود ویشتلو ذریعه جوړه کړه. او مونږ دهغوی دپاره د اور دسیزلو عذاب تیارکړي دي.

**قوله تعالی:: فَاَتْبَعَهٗ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴿۱۰﴾**

**شهاب ثاقب:** اوپه ایت کښی دی چه مونږپه اسمان کښی برج جوړکړي دي،اوهغي ته کتلوواﻻانسانانوپه سترګو کښی ننوتلوواﻻخیزونه جوړکړل اودشیطان رجیم نه موهغه محفوظ اوساتل.چه یوشیطان دچا خبره اوري نودهغه طرف ته یوه تیزه شعله روانه شي.اومونږدهرسرکش شیطان نه داسمانونوحفاظت اوکړو،دهغه په بس کښی نشته چه دفرښتوخبري واوري.اوچه کله هغه داسي کوی نویوه شعله دهغه طرف ته روانه شي اوهغه اوسوزوی. دوی اسمانونو پوري نشي رارسیدي،دالله تعالی دشریعت او د تقدیردکارونودچاخبري دوی نشي اوریدي.ددي باره کښی حدیثونه مونږپه ایت ﴿حتی اذافزع﴾ تفسیر کښی بیان کړل.دکوم طرف نه هم چه دوی اسمان ته خیژی دهغه خائي نه ددوی طرف ته اور وراچولي شي. دوی لري کولوذلیله کولو،اودرولو،اومخکښی نه تلودپاره داسزابیان کړي شوه،اوداخرت تول عمری عذاب لاپاتي دي.کوم چه ډیرالمناك،دردناك اوهمیشه والي والادي.اوکه چري یوجن څه خبره دفرښتي نه واوریده اوهغه دخان نه لاندینی کس ته اوونیله،اوهغه دخان نه لاتدنی کس ته،نویوشعله دهغه پسي شي نودهغه دلاندینی ته رسولونه مخکښی هغه شعله دي اوسیزی،کله هغه دبل غوږونوته اورسی.هغه خبري دی کومي چه دکاهنانوغوږونوته دشیطانانوپه خولي رارسی.دثاقب مطلب ډیرښیات تیز،زیاتي رڼااوالادي.

**دشیطان اسمان ته د ختلو سلسله وه بیا ختمه شوه::** دحضرت ابن عباس‌ؓ بیان دي چه شیطانان به مخکښی اسمانونوته تلل اووحی به ئي اوریدله،هغه وخت به په دوی باندي ستوری نه ماتیدل،دوی به دهغه خائي خبري دلته دکاهنانوپه غوږونوکښی ددروغوسره ونیله.کله چه حضورﷺ ته نبوت ملاؤشو، نو بیادشیطانانواسمان ته تلل ختم شول.اوکه اوس دوی څي نودوی پسي داورشغلي غورځولي کیږی او هغوی اوسوزوی،کله چه هغوی ددي نوي پیدا شوی کارخبرابلیس ملعون ته اورسولو،نوهغه اوونیل چه دڅه خاص کارپه وجه باندي دومره احتیاط او حفاظت کړي شوي دي.نودخبررسانوډلو هغه په دنیا کښی خواره کړل،کوم ډله چه دحجازطرف ته لاړو،هغوی اولیدل چه حضورﷺ دنخله دداړو غرونو په

مینځ کښې مونځ کوی.هغه ابلیس ته داخبراورسولو،هغه اوونیل هم دغه وجه ده چه ستاسو اسمان ته تلل بندشوی دی(۱).ددې پوره تفصیل که دالله خوښه وی نو په (وَاَنَّالَمَسْنَاالسَّمَآءَ) کښې به راشي.

فَاسْتَفْتِهِمْ اَهُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمْ مَّنْ

پس تپوس اوکړه ته ددوی نه | ایا دوئ | زیات سخت دی | په پیدا کولو کښي | یا هغه څیزونه |

نو ددوئ نه تپوس اوکړه | چې ددې خلقو پیدا کول ګران دې | یا دهغه ټولو څیزونو کوم چې

خَلَقْنَاؕ اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّنْ طِيْنٍ لَّازِبٍ۝ بَلْ

چې پیدا کړي دي مونږه | بیشکه پیدا کړي دی مونږ دوئ | دختې | سلیخناکې نه | بلکه

مونږ پیدا کړی دی | داخلق مونږ دیوې ځلیښناکې ختې نه پیدا کړی دی | ............ بلکه ته خو

عَجِبْتَ وَيَسْخَرُوْنَ۝ وَاِذَا ذُكِّرُوْا لَا يَذْكُرُوْنَ۝

تعجب کوې ته | او ټوقې کوی دوئ|او کله چې|نصیحت کیدې شی دوئ ته|نونصیحت نه قبلوی دوئ

ددوئ په انکار تعجب کوې | اودوئ (په تاپورې) ټوقې کوی |اوکله چې دوئ پوهولې شي| نودوئ نه پوهیږي

وَاِذَا رَاَوْا اٰيَةً يَّسْتَسْخِرُوْنَ۝ وَقَالُوْٓا اِنْ هٰذَآ

اوکله چې | اووینې دوئ | یوه نښه | نو وربورې ټوقې کوی دوئ | اووائي دوئ | چې نه دې دا |

اوکله چې دوئ یوه معجزه اووینی | نوپه هغې پورې ټوقې کوی | اودا وائی چې دا خو

اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌۚ ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا

مګر | جادو دې | ښکاره | ایا کله چې | مړه شو مونږه | او شو | خاورې | او هډوکی |

ښکاره جادو دې |............ ایاکله چې مونږ مړه شو|او ښاورې او هډوکی شو

ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَۙ اَوَاٰبَآؤُنَا الْاَوَّلُوْنَؕ قُلْ نَعَمْ

ایا مونږه به ژوندی راپاسولې شو بیا | ایا او پلاران زمونږه | رومبني (هم) | ورته اووایه | چې هو |

نولابیابه راژوندی کولې شو|اوایا زمونږپلار نیکه به هم راژوندی کولې شي | ته اووایه چې اؤ

وَاَنْتُمْ دَاخِرُوْنَۚ فَاِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَاِذَا هُمْ

او تاسو | ذلیله (بې وسه) یئ | پس بیشکه | دا قیامت | جرق دې یو | پس په هغه دم به | دوئ

تاسو به ذلیل او خوار یئ | قیامت خوبه بس یوه چغه وی | نو هغه وخت کښې به دوئ ټول لیدل کتل

يَنْظُرُوْنَ۝

ګوري (چې څه کیږي) |

شروع کړي |

**قوله تعالى:: فَاسْتَفْتِهِمْ**

**دانسان پیدائش او د قیامت منکر ته رټنه:** الله تعالى خپل نبي ﷺ ته حکم کوی چه ددې قیامت نه منکرونه تپوس اوکړه چه دستاسوپیدا کول مونږته ګران دی یازمکه اسمان فرښتې اوپیریان وغیره؟دابن

---

(۱) الطبری: ۱۲/۲۱..

مسعود‌ﷺ دقرات(امرمن‌عددنا) نه (۱)مطلب دادي،چه داخوهغوی هم منی نوبیادمرګ نه پس دژوندنه انکار ولې کوی؟نوپه بل ایت کښې دی چه دانسان دپیدائش نه خودېرلوې اودروندپیدائش دزمکې او اسمان دې،خوزیات خلق بې عمله دی.بیادانسان پیدائشی کمزوری بیانوی چه دې دمتیني خاورې نه پیدا دې،چه په هغې کښې ټینګوالې وواوهغه به لاسونوپورې اینختله.نوته حقیقت پورې اورسیدې نو په دې وجه ددوی په انکارباندې تعجب کوی.څکه چه دالله تعالی قدرتونه اوفرمانونه دستاسوورانډې دی. خودوی هغه اوریدلوسره خاندی اوچه کله څه واضح دلیل دهغوی مخې ته راشی،نوهغوی خندا کوی اووائی چه داخوجادودې،مونږداڅنګه اومنوچه دمرګ نه پس خاورې کیدلونه به بیاژوندی شو.اوزمونږپلارنیکونه به هم ژوندی شی.مونږدانه منو.

قوله‌تعالی::قُلۡ نَعَمۡ

منکرینوته جواب:: دالله داسې ذات دې چه دهغه مخکښې څوک هم نشته.فرمائی(وَكُلٌّ أَتَوۡهُ دَٰخِرِينَ)هر یو کس دهغه مخکښې په عاجزئ اولاچارئ سره حاضریدونکې دې.په یوایت کښې دی.(إِنَّ ٱلَّذِينَ يَسۡتَكۡبِرُونَ عَنۡ عِبَادَتِي سَيَدۡخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ) زما عبادت نه کولو والابه خوار او ذلیله وی اودوزخ ته به داخلیږی.بیاالله تعالی بیان فرمائی چه تاسوڅه ګران ګڼړئ هغه خوماته بالکل اسان دی.صرف یواوازنه پس به هریودزمکې نه راوځی اودقیامت دهشت اوحالاتوته به ګوری.والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالُوا | | يَٰوَيۡلَنَا | | هَٰذَا يَوۡمُ ٱلدِّينِ ۝ |
| اوواٸی به دوی | | اے افسوس دې مونږ لره | | دا ورځ دجزا ده |
| اودوئ به وائی چې هائې افسوس \| داخو دقیامت ورځ راغله | | | | |
| هَٰذَا يَوۡمُ ٱلۡفَصۡلِ | ٱلَّذِي | كُنتُم | بِهِۦ | تُكَذِّبُونَ ۝ أُحۡشُرُوا |
| دا ورځ دفیصلې ده | هغه | چې وئ تاسو | په دې سره | چې دروغ به مو ګڼړله \| راجع کړئ |
| داهم هغه د فیصلې ورځ ده \| چې تاسو به دروغ ګڼړله \| ظالمان خلق او دهغوی ظالمان | | | | |
| ٱلَّذِينَ | ظَلَمُوا | وَأَزۡوَٰجَهُمۡ | | وَمَا كَانُوا |
| هغه کسان | چې ظلم ئې کړې دې | او ښځې ددوئ | | او هغه (معبودان) چې وو دوئ |
| ملګری او دهغوئ معبودان ټول راجمع کړئ \| چې دالله ﷻ نه بغیر به ئې | | | | |
| يَعۡبُدُونَ ۝ | مِن دُونِ ٱللَّهِ | فَٱهۡدُوهُمۡ | | إِلَىٰ صِرَٰطِ |
| چې عبادت به ئې کولو دهغوئ | ماسوا دالله نه | پس سیده کړئ دوئ | | لارې |
| دوئ عبادت کولو \| ........ اوبیا دوئ دوزخ په لار روان کړئ | | | | |
| ٱلۡجَحِيمِ ۝ | وَقِفُوهُمۡ | إِنَّهُم | مَّسۡـُٔولُونَ ۝ | مَا لَكُمۡ |
| ددوزخ نه | او ودروی دوئ | بیشکه دوئ چې دی | تپوس کیدې شی ددوئ نه | څه اوشو تاسو لره |
| او دوئ اودروئ دودئ نه به یوه پوښتنه کیږی \| ........ چې تاسو باندې څه اوشو چې | | | | |

(۱) الطبری :۲۱/۱۹.

| | | |
|---|---|---|
| لَا تَنَاصَرُونَ﴿۲۵﴾ | بَلْ هُمُ الْيَوْمَ | مُسْتَسْلِمُونَ﴿۲۶﴾ |
| چې نهٔ کوئ امداد دیو بل | بلکه دوئ خو نن ورځ | خان پخپله حواله کونکی دی |
| دیوبل مدد نه کوئی | بلکه دوئ ټول به په دغه ورځ دشرم نه | ټیټ سرونه ولاړوی |

**قوله تعالىٰ:: وَقَالُوا يَاوَيْلَنَا**

**دقیامت دوږخې چغې**: دقیامت په ورځ دکافرانوپه خپلوعملونوباندې ملامته کیدلواودافسوس بیان دی.چه هغوی به بېپیمانه شی اودقیامت ویره ونکی کارونوته کتلوسره به وائی چه هاې هاې دا خو د جزا ورځ ده.نومومنان اوفرښتې به ورته دغصې په حالت کښې وائی چه اوهم داخودفیصلې ورځ ده کومه چه به تاسورښتونې نه منله.په هغه ورځ به دالله تعالى دطرف نه فرښتوته حکم وی چه ظالمان،دهغوی جوړې،دهغه رونړه اودهغوی په شان خلق یوخائې ته راجمع کړئ بیادوی ټولوته ددوزخ لاراوښایئ.څنګه چه فرمان دې.﴿ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ ﴾ یعنی هغوی به پړمخې رانده،کاڼړه جمع کړو اوبیا به دهغوی ځائې دوزخ وی،چه دهغې اوربه کله روښی نوموږبه هغه بیا تیز کړو اوهغوی ددوزخ خواه کښې لړوخت دپاره اودروئ،چه موږدهغوی نه څه تپوسونه اوکړو. د هغوی نه حساب واخلو.

**قوله تعالىٰ:: اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا**

ابن ابی حاتم کښې دی چه حضورﷺ فرمائی چه یوکس څوك دکوم کارطرف ته رابلی هغه به دقیامت په ورځ دهغه سره ولاړوی.نه به بې وفائی وی اونه به جدائی وی.اګرکه چه هم یونې راغوښتې وی.بیاحضورﷺ هم ددې ایت تلاوت اوفرمائیلو.([1])حضرت عثمان بن زائدهؓ فرمائی چه د ټولونه مخکښې به انسان نه دهغه دملګروباره کښې تپوس اوشی،بیابه دهغه تپوس اوشی چه ولې نن دیوبل مددنه کوئ؟تاسوپه دنیاکښې وئیل چه موږدیوبل سره یواودیوبل مددکونکی یو.دا خو څهٔ بلکه دوئ خونن اسلحې غورځولې دی.دالله تعالى فرمانبرداره جوړشوی دی.نه دالله تعالى دڅهٔ حکم خلاف کوی اونه کولې شی.نه دهغې بچ کیدیشی،اونه دهغه ځائې نه تختیدیشی.والله اعلم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ | عَلٰى بَعْضٍ | يَّتَسَآءَلُوْنَ﴿۲۷﴾ | قَالُوْٓا | اِنَّكُمْ | |
| او مخ به کړی خینی | ددوئ | خینو ته | چې تپوسونه به کوی دیو بل نه | اوبهٔ وائی | بیشکه تاسو چې یئ |
| اویو بل ته به ګوری | | او تپوسونه به شروع کړی | کشران به ورته وائی | چې تاسو به په موږ | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كُنْتُمْ | تَاْتُوْنَنَا | عَنِ الْيَمِيْنِ﴿۲۸﴾ | قَالُوْا | بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا |
| وئ تاسو | چې راتلئ به موږ ته | دښی طرفنه | اوبه وائی (جواب) | بلکه نهٔ وئ تاسو |
| باندې دښی طرف نه ډیر په زور کښې راتلئ | ........ | | مشران به ورته جواب ورکړی | نه بلکه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مُّؤْمِنِيْنَ﴿۲۹﴾ | وَمَا كَانَ لَنَا | عَلَيْكُمْ | مِّنْ سُلْطٰنٍ | بَلْ كُنْتُمْ |
| پخپله ایمان راوړونکی | اونهٔ وو موږ لره | په تاسو باندې | هیڅ زور | بلکه وئ تاسو |
| تاسوخو پخپله ایمان نه راوړلو | ........ | اوزموږ خو په تاسو څه زور نه وو | | ........خوتاسو |

[1]) ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة والصافات :۳۲۲۸..

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَوْمًا | طٰغِيْنَ۝ | فَحَقَّ | عَلَيْنَا | قَوْلُ رَبِّنَآ | اِنَّا |
| قوم (خلق) | سرکشه | پس ثابته شوه | په مونږ باندې | خبره درب زمونږه | بیشکه مونږه |
| سرکشه خلق وئ ............ نو اوس په مونږ ټولو باندې دخپل رب فیصله ثابته شوه اوس به مونږ | | | | | |
| لَذَآىِٕقُوْنَ۝ | | فَاَغْوَيْنٰكُمْ | | اِنَّا كُنَّا | غٰوِيْنَ۝ |
| خامخا څکونکي یو دعذاب | | پس بې لارې کړئ مونږه تاسو | | بیشکه وو مونږه | بې لارې پخپله |
| ضرور (دعذاب) مزه او څکو بیشکه چې مونږ تاسو ګمراهئ کړئ وئ (خو مونږ) پخپله هم ګمراه یو | | | | | |
| فَاِنَّهُمْ | يَوْمَىِٕذٍ | فِى الْعَذَابِ | مُشْتَرِكُوْنَ۝ | | اِنَّا كَذٰلِكَ |
| پس بیشکه دوئ به | په دغه ورځ | په عذاب کښې | شریك وی | | بیشکه چې مونږه همدا رنګې |
| نو دا ټول به په دغه ورځ په عذاب کښې شریک وی مونږ داسې مجرمانو سره هم | | | | | |
| نَفْعَلُ | بِالْمُجْرِمِيْنَ۝ | | اِنَّهُمْ كَانُوْٓا | اِذَا قِيْلَ | لَهُمْ |
| کار کوو | دمجرمانو سره | | بیشکه چې دوئ وو | کله چې به اوونیلې شو | دوئ ته |
| دغه شان کوو دوئ داسې خلق وو چې کله به ورته اوونیلې شو چې د الله ﷻ نه بغیر | | | | | |
| لَآ اِلٰهَ | اِلَّا اللّٰهُ | يَسْتَكْبِرُوْنَ۝ | وَيَقُوْلُوْنَ | | ءَاِنَّا |
| چې نشته دې لائق دعبادت | مګر الله دې | نو دوئ به لوئې کوله | اوونیل به ئې | | آیا مونږه |
| بل معبود نشته نو دوئ به تکبر کولو ............ او دابه ئې وئیل چې آیا مونږ | | | | | |
| لَتَارِكُوْٓا | اٰلِهَتِنَا | لِشَاعِرٍ | مَّجْنُوْنٍ۝ | بَلْ جَآءَ بِالْحَقِّ | |
| پرېښودونکي یو | دخدایانو زمونږه | دپاره دیو شاعر | لیوني | بلکه هغه راوړې دې حق | |
| دیو لیوني شاعر په وینا خپل معبودان پرېږدو !؟ بلکه دې پیغمبر یو رېښتونې دین راوړئ دې | | | | | |
| وَصَدَّقَ | الْمُرْسَلِيْنَ۝ | | | | |
| او تصدیق ئې کړې دې | درسولانو | | | | |
| او د ټولو پیغمبرانو تصدیق کوی | | | | | |

**قوله تعالی: وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ**
**دکافرانو په دوزخ کښې طبقې او یو دبل ملامته کول.** کافران خلق به چه څنګه ددوزخ په طبقو کښې سوزی هم دغه شان به دقیامت په ورځ په یو بل باندې الزامونه هم لګوی. کمزوری خلق به زوراور خلقو ته وائی چه مونږخو به دستاسو حکم منولو، نن به تاسو مونږ دلږ شان عذاب نه خلاص کړئ؟ هغوی به وائی چه مونږخو پخپله دتاسو سره په دې دوزخ کښې سیزوو. الله تعالی پخپلو بندګانو کښې فیصلې کړی دی. او په نورو خایونو کښې داسې نقل کړې شوی دی چه ضعیف خلق به کبرکونکوته وائی، بلکه تاسو نه وئ نو مونږ به ضرور ایماندار وو. هغوی به جواب ورکړی ولې مونږ تاسو دهدایت نه منع کړې وئ؟ که تاسو پخپله بدکاره وئ. دوی به وائی چه دشپا او ورځو مکر وو چه تاسو به مونږ ته وئیل چه دالله تعالی سره کفر او کړئ او دهغه سره شریك جوړ کړئ. عذاب لیدلو سره به دوی ټول بشپیمانه شی خو خپل شرم به پټوی، ددې ټولو کافرانو په څټونو کښې به پړی واچولې شی.

اودايقيني خبره ده چه هريوته به صرف دخپلو عملونوسزاملاويږي.نودلته داهم بيانيږي چه هغوى به خپلو مشرانواوسردارانوته وائي چه تاسوبه زمونږدينې طرف ته راتلئ:يعني چه مونږه كمزورى اوكم حيثيت والاوو،اوتاسوته په مونږباندي ترجيح وه.نوتاسويه مونږپه زورسره دحق نه واړولو.دابه د كافرانو ويناوي كومه به چه هغوى شيطان ته كوي.

قوله تعالى:: قَالُوٓا اِنَّكُمْ كُنْتُمْ

دويم قول چې انسانان به پيريانو ته دا خبرې كوي::داهم وئيلي شوي دي چه انسان به داخبره پيريانوته كوي چه تاسومونږدښه كارونونه منع كولواوبدوكاروته به موراضي كولو.گناه به موراته خائسته اوښه خودله،اونيكي به موراته گرانه اوسخته خودله. دحق نه به مومنع كولواوپه باطل باندې به موو راچولو. چه كله به دنيكئ خيال زمونږپه زړه كښې راغې نوتاسوبه په څه ناڅه مونږدهغې نه منع كړو. اسلام، ايمان، خوبي،نيكئ،اوښه كارونونه تاسومونږمنع كړي يو.دتوحيدنه مولرې كړې يو. مونږ تاسوخپل خيرخواه گنړلئ،رازدارموجوړكړي وئ،دستاسوخبرې به مومنلې اوتاسوبه موښه كسان گنړلئ،ددې به جواب كښې به پيريان اوشيطانان چه دهرڅومره عزت والااولوي خلق وو،جواب به وركوي چه په دې كښې زمونږهيڅ قصورنشته،تاسويخپله هم داسې وئ،دستاسوزړونه به دايمان نه تختيدل، اود كفر طرف ته به ورتلل،مونږچه تاسوكوم ځيزته رابللئ:هغه څه حق ځيزنه وو.نه دهغې په ښه والي باندې څه دليل وو،خوچه دبرائى طرف ته مخكښې نه مائل وئ،دستاسوبه زړونوكښې سركشى اوبرائى وه.په دې وجه باندې تاسوزمونږاومنل.اوس خوپه مونږټولوباندې دالله تعالى قول ثابت شوچه مونږيقيناًدالله تعالى عذاب خوړلووالايو.داغې خلق به خپلوړوخلقوته،دحكم كونكي به خپلوتابعدارخلقوته وائي چه مونږخويخپله هم خويدلى وو،مونږتاسوهم دخپل ضلالت طرف ته راوبللئ،اوتاسويه منډه راغلئ: اووايئ:په دې كښې زمونږڅه قصوردې؟مونږپه تاسوباندې څه ظلم اوسختې خونه دې كړې؟ تاسو ولې زمونږخبره اومنله؟الله تعالى فرمائي،نونن داټول خلق ددوزخ په عذاب كښې شريك دي.هريودخپل خپل عملونوسزاتيروي.دمجرمانوسره مونږهم داسې كوو.

قوله تعالى:: اِنَّهُمْ كَانُوٓا

ددوئ د دنيا حالت دا وو:: دوى دمومنانوپه شان دالله تعالى توحيدنه منلو،بلكه دتوحيدداوازنه به ئې كبر اونفرت كولو.رسول الله ﷺ فرمائي چه ماته حكم اوكړې شوچه دخلقوسره جهاداوكړه.ترڅوچه هغوى لااله الاالله،،اووائي .چا چه داا،وئيله هغه خپل مال اوځان بچ كړو.خواسلامي فرمان نه،دهغه دباطن حساب كتاب به الله تعالى كوي .(۱)دالله تعالى په كتاب كښې هم دغه مضمون دې،اوديوكبركونكي قوم ذكردې.چه هغوى به دا كلمه نه وئيله.

په قيامت كښې د مختلفوډلو رابلل او د هغوئ نه سوال::ابن ابى حاتم اوابوالعلاء رحمه الله نه روايت دې،چه يهوديان به دقيامت په ورځ رااوبللي شي،اودهغوى نه به سوال اوكړې شي چه تاسوبه دنياكښې دچا عبادت كولو؟هغوى به وائي چه دالله تعالى او عزيرؑ. هغوى ته به اووئيلې شي چه ښه گس طرف ته راشئ، بيابه دنصرانيانونه هم دغه سوال اوكړې شي. هغوى به وائي چه دالله تعالى اوحضرت مسيحؑ،نوهغوى ته به هم دغه اووئيلې شي.بيابه مشركان رااوغوښتلې شي اوهغوى ته به لااله الاالله اووئيلې شي نوهغوى به كبركوي،درې خله به هم داسې اوشي.بيابه حكم اوشي چه دوى هم گس طرف ته راولئ:فرښتې به دوى دمرغونه هم زربوځي.بيابه مسلمانان رااوغوښتلې شي اوهغوى ته به اووئيلې شي چه تاسودچاعبادت كولو؟دوى به وائي صرف دالله تعالى.دوى نه تپوس اوشي كه تاسوهغه وينئ:نوهغه پيژندلې شئ؟دوى به وائي اوادوى نه به تپوس اوشي چه تاسوهغه څنگه پيژندلې

---

(۱) ددې اصل صحيح بخاري كتاب الجهاد باب دعاء النبي ﷺ والنبوة: ۲۹۴۶،او صحيح مسلم :۲۱ كښې موجوددې

شئ اوهغه خوتاسوچرته ليدلي هم نه دي؟دوی به جواب ورکړی چه اوداتهيك ده مونږته پته ده چه دهغه برابرهيڅ څوك نشته.نوالله تعالى به خپل خان هغوی ته اورسوی اوهغوی به بچ کړی.دوی به دتوحيداوشرك خلاف کلمه اوريدلوسره ونيل چه ددې شاعر اومجنون په ونيلوسره مونږدخپل معبودان پريږدو؟ منل خويوطرف ته،الټه به ني حضورﷺ ته شاعر او ديوانه ونيل.نوالله تعالى هغوی ته دروغژن وائى اودهغوی په ترديدکښې فرمائى چه حضورﷺ خو بالکل رښتونې دې.رښتيانې راوړی دی ټول شريعت نې حق دې.که خبرونه وی اوکه حکمونه وی،دې ټول رسولان هم رښتونی منې.اورسولانوچه کوم صفتونه اوپاکيانې دحضورﷺ بيان فرمائيلی دی هغه په حضورﷺ کښې په رښتياموجودې دی.دې هم هغه حکمونه بيانوی کوم چه مخکښې نبيانو(عليهم السلام)بيان کړی دی.اوچه څنګه په ايت کښې دی.﴿مَايُقَالُ لَكَ اِلَّامَاقَدْقِيْلَ لِلرُّسُلِ مِنْ قَبْلِكَ ﴾ چه تاته هغه ونيلی کيږی کوم چه دستانه مخکښې نبيانوته ونيلی شوی دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّكُمْ | لَذَآئِقُوا | الْعَذَابِ | |
| بيشکه تاسو | خامخا څکونکی يئ | دعذاب | |
| تاسو ټول به د دردناک عذاب مزه اوڅکئ | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْاَلِيْمِ ۚ | وَمَا تُجْزَوْنَ | اِلَّا مَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ ۙ |
| درد ناك | اونه درکړې کيږی بدله تاسو ته | مګر هغه | چی وئ تاسو | چی کول به مو |
| اوتاسو ته زياتی نه صرف ستاسو دخپل عمل بدله به درکولي شی | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِلَّا عِبَادَ اللهِ | الْمُخْلَصِيْنَ | اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | رِزْقٌ مَّعْلُوْمٌ ۙ |
| ماسوادبندګانو دالله نه | چی خالص کړې شوی دی | دې | دهغوئ دپاره | رزق معلوم |
| البته دالله مخلص بندګان به د عذاب نه بچ وی | اودوئ دپاره معلوم خوراکونه مقرردی | | | |

| | | |
|---|---|---|
| فَوَاكِهُ ۚ | وَهُمْ مُّكْرَمُوْنَ ۙ | فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۙ |
| ميوې به وی | او هغوئ به په عزت سره ساتلې کيږی | په جنتونو دنعمتونو کښی |
| قسم قسم ميوې به وی | اوهغوی به د ارام په باغونو کښې ښه په عزت سره ناست وی | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلٰى سُرُرٍ | مُّتَقٰبِلِيْنَ | يُطَافُ | عَلَيْهِمْ | بِكَاْسٍ |
| ناست به وی په تختونو باندې | يو بل ته مخامخ | ګرزولې کيږی به | په هغوئ باندې | ايپالئ دشرابو |
| په تختونو به يوبل ته مخامخ ناست وی | د چينې د شرابو ډک ډک جامونه به پرې ګرځولې | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ مَّعِيْنٍ ۙ | بَيْضَآءَ | لَذَّةٍ | لِّلشّٰرِبِيْنَ ۚ | لَا فِيْهَا |
| دچينې نه | تك سپين | خليدونکې | خوند ناك به وی | دپاره دڅکونکو | نه به وی په هغې کښې |
| شی | تک سپين به وی دڅکونکو دپاره د خوند نه ډک وی | نه به په کښې ............ | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| غَوْلٌ | وَّلَا هُمْ | عَنْهَا | يُنْزَفُوْنَ | وَعِنْدَهُمْ | قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ |
| څه ضرر | اونه به هغوئ | دهغې نه | بې عقله کيږی | اووی به دهغوئ سره | ابنکته کتونکې حورې |
| سرخوږئ وی | اونه په عقل کښې نقصان راولی | او ورسره به دحيا نه ښکته کتونکې د غټو غټو | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| عِيْنٌ ﴿٤٨﴾ | كَاَنَّهُنَّ | بَيْضٌ | مَّكْنُوْنٌ ﴿٤٩﴾ |
| غټوغټو سترګو والا \| | داسې نازکې لکه چې هغوئ \| | اګۍ دی \| | پټې ساتلې شوی \| |
| سترګو والا ښځې وی \| | ........لکه چې په پرده کښې محفوظ | اګۍ | پټې پرتې وی \| |

**قوله تعالىٰ:: اِنَّكُمْ لَذَآىِٕقُوا الْعَذَابِ الْاَلِيْمِ﴿٣٨﴾**

**کافران په عذاب اومومنان په نعمتونو کښې** : الله تعالى ټولوخلقوته فرمانی چه تاسودپاره دردناك عذاب دې.اوصرف دهغه څيزدلپه به تاسوته ملاويږی کوم چه تاسودلته کوئ.بياخپل مخلص بندګان نې دهغې نه بيل کړی،والعصرکښې فرمانی چه ټول انسان په نقصان کښې دی خوايماندار،نيك عملونو والا نه دی،اوپه سورة والتين کښې فرمانی مونږ انسان په ډيرښه حالت کښې پيداکړو،بياموهغه د لاندينونه هم لاندې کړو.خوچه چاايمان راوړو، اوچه چانيك عمل اوکړو.اوپه سوره مريم کښې فرمانيلی دی. ﴿وَاِنْ مِّنْكُمْ اِلَّا وَارِدُهَا﴾ تاسوکښې به هريودوزخ ته ځی،داخوستاسورب فيصله کړې ده،اوداضروری څيزدې،خوبيابه زه متقيان خلاص کړم،اوظالمان به پکښې پريږدم.په سوره مدثرکښې ارشاددی،**کل نفس بما کسبت رهينة** هرکس په خپلوخپلوعملونوکښې مشغول دې،خوهغوی چه دهغوی په ښی لاس کښې عملنامه راغله،دلته هم دخاص بنديانوخلاصی يادکړې شوه چه دعذابونونه،دحساب سخت تکليفونونه بچ دی.بلکه دهغوی بدې ئې معاف کړې،اودهغوی نيکيانې ئې لس چنده زياتې،بلکه اووسوه چنده زياتې کړې.دهغوی دپاره مقرررزق دې،اوقسما قسم ميوې دی.دهغوی به خدمت کيږی،عزت به ئې وی اواکرام به ئې وی.هغوی ته هرڅوك هرکلې وانی،ډيرعزت به ئې وی،لوې عزت ادب به ئې ساتلې کيږی،دوی به دنعمتونونه ډك جنت کښې وی.دهغه ځائې په تختونوباندې به داسې ناست وی چه دچاشابه چاته نه وی.

**قوله تعالىٰ:: مُتَقٰبِلِيْنَ﴿٤٤﴾**

**ددې متعلق يو حديث** :: په يوغريب حديث کښې دی چه ددې ايت دتلاوت نه پس حضورﷺ اوفرمائيل، د هر يو نظرونه به په بل باندې پريوځی،يوبل ته به مخامخ ناست وی.دهغه شرابو دوران به وی کوم چه به بهيږی.چه دهغې دختميدو ياکميدوبه څه ويره نه وی.چه هغه به ښکاره اودننه خائسته دی،په هغې کښې خوبيانې دی خرابيانې پکښې نشته.درنګ نه سپين،په خوندکښې ډيرمزيدار،نه بيادهغې څکلوسره په سر درد کيږی ،نه به پرې مستی راځی اونه جنون، ددنياپه شرابوکښې خرابی چه دخيټې درد ،دسردرد،بې هوشی اوبدحواسی وغيره پيداکوی،خودجنت په شرابوکښې به دايوه خرابی هم نه وی.په کتلوکښې خائسته، څکلوکښې مزيدار،ډيرې فائدې،په سروراومستئ کښې اعلی،خوعقل اوپوهه ختمولو والا نه،نه خراب بوئی والااونه خراب رنګ والا،بلکه خوشبودار،خائسته رنګ،خائسته ذائقه،اوفانده ورکونکی.ددې څکلوسره به په خيټه کښې نه دردکيږی،اوزيات والې ئې نقصان ده نه دې.په طبيعت سازدی،سرنه درنوی،چکرنه راولی،ګرانی نه جوړوی،هوش اوحواس نه ورکوی،څه تکليف نه پيدا کوی،قې اودستونه نه پيداکوی.

**د شرابوڅلور خرابئ**::حضرت ابن عباسؓ فرمانی چه په شرابو کښې څلورخرابئ دی،①نشه ②دسر درد ③قې④ متيازې. خو دجنت شراب به ددې ټولوخرابيانونه پاك وی.اولولئ سوره الصافات . د هغوی سره به دښکته نظرونو والا، شرميدونکی نظرونوالاپاکدامنې حورې وی چه دهغوی نظرونه د خپل خاوندانودمخ نه بغيرپه بل څه باندې نه دی لګيدلې اونه به اوغورځيږی.غټې غټې،خائسته سترګې،حسن اوصورت،حسن اوکردار دواړه څيزونه په هغوی کښې موجوددی.څنګه چه زليخاپه حضرت يوسفؑ کښې دواړه څيزونه يوځائې اوليدل،ښځوهغې ته خبرې کول شروع کړل،نوهغې يوه

ورخ تولې ښځې جمع کړې او حضرت یوسف ﷺ ته يې جوړ راجوړ کړو او ونې غوښتلو تولې ښځې دهغه حسن ته کتلو باندې مدهوشه شوې اواونې ونيل داخوفرښته ده، زليخاا وونيل، چه هم داهغه کس دې دچاباره کښې چه تاسو ماملامته کوئ، والله دې ماخان ته په هره طريقه باندې مانله کړو، خوپاکدامنه دې. دبهرحسن سره دننه حسن هم لرى. ډيرپاکباز، امين، پارسا، متقى اوپرهيزګاردې، هم دغه شان حورې هم دى، چه دبنکاره حسن سره په هغوى کښې دننې خوبيانې هم شته. بيادهغوى نورحسن بيانيږى. چه د هغوى سپين سپين بدن، سور سپين رنګ داسې پرقيدونکې اوخانسته دې لکه محفوظ ساتلې شوې ملغلره، چه هغې ته دچالاس نه وى رسيدلې، چه هغه دسيپې نه نه وى وتلې، چه په هغې باندې د دنيا هوانه وى لګيدلې. چه هغه په خپل حسن کښې بې مثاله وى. هم دغه شان دهغوى پنډې دى. داهم ونيلى شوى دى چه دهګئ په شان دى دهګئ برنى پوستکى نه لاندې پوستکى په شان دهغوى بدن دې.

يوحديث کښې دحضرت ام سلمه ﷺ دسوال په جواب کښې حضور ﷺ اوفرمائيل چه "حورعين" نه مراد دغټو سترګوولا، توروبانړوولاحورې دى. بيائې تپوس اوکړو "بيض مکنون" نه څه مراددى؟ اونې فرمائيل دهګئ دننه سپين پوستکې[1]. ابن ابى حاتم کښې دى چه رسول الله ﷺ به فرمائيل چه کله به خلق دقبرونونه راپاسولى شى، نودټولونه مخکښې به زه راپاسولې شم، چه کله به هغوى دالله تعالى مخکښې حاضرولې شى نوزه به دهغوى خطيب يم، اوچه هغوى به کله خفه وى نوزه به هغوى ته زيرى ورکوم، اودهغوى سفارشى به يم. اودوى به منع کړې شوې وى اودحمدجنډه به هغه ورخ زماپه لاس کښې وى. دحضرت ادم ﷺ په اولادکښې دټولونه زيات اکرام اوعزت والازه يم، زه دفخرډپاره نه وايم، زمانه مخکښې روستوبه دقيامت په ورخ زرخادمان ګرځى. چه هغوى به دپټې هګويانې مثاله ملغلرو په شان وى. والله اعلم بالصواب.

| مِّنْهُمْ | قَآئِلٌ | قَالَ | يَّتَسَآءَلُوْنَ۝ | عَلٰى بَعْضٍ | فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

بيا به مخ کړى خينى دهغوئ | خينوته | چې تپوسونه به کوى ديو بل نه | اوبه وائى | يوويونکې | دهغوئ نه

بيا به هغوئ به يو بل ته مخامخ شى | او تپوسونه به کوى | ..........يوکس به په کښې اووائى

| لَمِنَ الْمُصَدِّقِيْنَ۝ | اَئِنَّكَ | يَّقُوْلُ | قَرِيْنٌ۝ | لِيْ | اِنِّيْ كَانَ |
|---|---|---|---|---|---|

بيشکه زۀ چې وم | اوو مالره | يو ملګرې | چې ونيل به يې | ايا تۀ (هم) | تصديق کونکونه يې ددوباره ژوند)

چې زما يو ملګرې وو | هغه به ماته ونيل چې ايا ته هم دقيامت په ورخ تصديق کوې؟

| لَمَدِيْنُوْنَ۝ | ءَاِنَّا | وَّعِظَامًا | تُرَابًا | وَّكُنَّا | مِتْنَا | ءَاِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|

ايا کله چې | مړه شو مونږه | او شو مونږ | خاورې | او هډوکى | ايا مونږه لره به | خامخاجزا سزاورکړې کيدې شى

اياکله چې مونږ مړۀ شوا او بناورې هډوکى شوا نوايا مونږ ته به بدله راکولې شى

| فَرَاٰهُ | فَاطَّلَعَ | مُّطَّلِعُوْنَ۝ | هَلْ اَنْتُمْ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|

اوبه وائى هغه | ايا تاسو | ليدل غواړئ (هغه منکرلره) | بيا سراوچت کړو هغه | پس وې ليدو هغه

ورته به اوونيلې شى | چې تاسو (هغه ته) ښکته کتل غواړئ | نو هغه به اوګورئى

[1] الطبرى: ۲۱/٤٤.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِىْ سَوَآءِ الْجَحِيْمِ۝ | قَالَ | تَاللّٰهِ | اِنْ كِدْتَّ | لَتُرْدِيْنِ۝ |
| په منځ ددوزخ کښې | وې وئیل | قسم دې په الله | قريبه وه چې تا | خامخا تباه کړې وم زۀ |

اوخپل ملګرې به د دوزخ په مينځ کښې بيامومئ | دې به اووائی چې قسم دې په الله تاخو زه تباه کولم

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَوْلَا نِعْمَةُ | رَبِّىْ | لَكُنْتُ | مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ۝ | اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ۝ |
| که چرې نۀ وې فضل | د رب زما | نو خامخا وم به زۀ | حاضر کړې شوونه (دوزخ ته) | آيا پس نۀ يو مونږه |

اوکه په ما دخپل رب فضل نه وې شوې انوزه به (لکه ستا) راګيرشوې ووم | آيا (داسې نه ده چې) مونږ به بيانه مرو؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِلَّا | مَوْتَتَنَا | الْاُوْلٰى | وَمَا نَحْنُ | بِمُعَذَّبِيْنَ۝ |
| مړه کيدونکی | مګر مرګ زمونږه | رومبنې (تير شوې) | اونۀ يو مونږه | عذابيدونکی |

سوا (ددنيا) د رومبی مرګ نه | اونه به راته چرې عذاب راکولې شی ؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ هٰذَا | لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ۝ | لِمِثْلِ هٰذَا | فَلْيَعْمَلِ | الْعٰمِلُوْنَ۝ |
| بيشکه دا (انجام) | خامخا دا کاميابی ده لويه | دپاره دداسې کاميابئ | پکار دې چې عمل اوکړی | عمل کونکی |

بيشکه دا ډيره لويه کاميابی ده | ..................هم دداسې کاميابئ دپاره عمل کونکو دپاره عمل کول پکار دي

**قوله تعالى:: فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ۝**

**جنتيان به ددنياذژوندذکرکوی:** کله چه به دجنت خلق په مزواوبې فکروکښی اواوزګارتياکښی دجنت په محلونو کښی ديوبل سره په عيش اوعشرت سره تختونوباندې ناست وی،په زرګونوخانسته اوذهينې خدمت ګارې به دهغوی خدمت کوی.پاك شراب به څکلې کيږی.هلته به په خبروخبروکښی داذکراوشی چه په دنياکښی څنګه حال تيرشوې دې،ورځې څنګه تيرې شوې دی؟په دې باندې به يوکس وائی چه زما واورئ،زمايوشيطان مشرك ملګرې وو،چه هغه به ماته اکثرونيل چه تعجب دې په تاباندې،چه ته دا خبره منې چه کله مونږ دمرګ نه پس په خاوره کښی خاوره شو،مونږبه خالی،خراب شوې هډوکی شو، بيا به دحساب کتاب اوسزاجزادپاره راپاسولې شو،هغه کس خوماته جنت کښی په نظرنه راځی،څه عجيبه به نه وی که هغه دوزخ ته تلې وی،که تاسوغواړئ نوماسره نې په دوزخ کښی حال ليدلې شئ چه دهغه سره به څه کيږی؟کله چه به هغه ته ګوری نووينی چه هغه کس دسرنه خپوړونې سوزی، پخپله هغه نه اورجورشوې دې.ددوزخ په مينځ کښی ولاړدې،اوپه بې بسې سره يوخوا بل خوا ګوری، اودغه يوبه څه وينی بلکه هغه به ګوری چه ټول لوی لوی خلق په دوزخ کښی دی.“

**جنتيان چې اوغواړی نو جنت نه به جنتيان ليدې شی:.** كعب احبار رحمه الله فرمائی چه جنتيان خلق چه کله غواړی هغوی دوزخيان کتلې شی.هغوی به خپل دښمنان په اور کښی سوزيدوباندې ليدلوسره خوشحاليږی. جنتی به دهغه ليدلوسره هغه ته وائی چه جناب تاخو تباه کړې ووم،خودالله تعالی شکر دې چه زه هغه دستانه خلاص کړم،که دالله تعالی فضل اوکرم په ماباندې نه وې،نوزماحال به هم ډير خراب وو.اوزه به هم دستاسره دې دوزخ ته راغلې ووم.اوسوزيدم به.دالله تعالی شکردې چه زه هغه د ستا

دپښتوپښتوخبرونه اوساتلم.اودستااثرنه ئې زه محفوظ اوساتلم .تاپه غلط کارونوکښې څه کمې نه وورېخودې.اوس مومن يوه خبره بله کوي چه په هغې کښې دهغه دخوشحالي اوکاميابي خبردې.چه هغه يوځل خوپه دنياکښې مړشوې وو،نه اوس ده دپاره مرګ شته اونه دعذاب اووبال ويره،اوهم دابهترينه اودهميش والي کاميابي ده.دحضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمان دې چه جنتيانوته به اووئيلې شي چه دخپلوعملونوپه بدله کښې ښې مزې اوکړئ.په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه جنتيان به په جنت کښې نه مري.دې اوريدلوسره به هغوی وائي چه مونږته به دلته مرګ نه راځي؟عذاب خوبه راته نه راکړې کيږي؟نوجواب به ورته ملاؤشي نه بالکل نه. هغوی ويريدل چه چرته مرګ دهغوی نه تولې مزې وانخلي.چه کله داويره ختمه شوه نوهغوی په سکون ساه واخستله.شکردې داخوکاميابي ده اولوې مقصدحاصليدل دی.ددې نه پس ئې اوفرمائيل دداسې کاميابئ حاصلولوډپاره عاملانوته عمل کول پکاردي.

قتادة رحمه الله خوفرمائي چه دادجنتيانوقول دې.امام ابن جرير رحمه الله فرمائي دالله تعالى دفرمان نه مطلب دادې چه ددې نعمتونواورحمتونوحاصلولوډپاره خلقوته په دنياکښې په زياتې مينې سره عمل کول پکاردی،چه هغوی ته هم دانعمتونه حاصل شي.(۱)

:ددې ايت مضمون سره يوشان يوه قصې هم اولولئ:دوه کسان خپلوکښې شريك وو،هغوی سره اته زره اشرفئ جمع شوې،يوخوپيشه ور او کسب ګر وو،اوهغه ته دخيزونوپته وه،اوبل ناواقفه وو،په دې وجه واقف کس دې ناواقفه کس ته اووئيل،چه اوس زمونږګذاره ګرانه ده.ته خپل حق واخله اوبيل شه،ته د کاروزګارنه ناواقف ئې.نودواړوخپلې حصې بيلې کړې اوجداشول.بيادهغه کسب والاکس دبادشاه دمرګ نه پس دهغه محل په زردیناره باندې واخستلو،اوخپل ملګری ته ئې اوخودلو،اوئې وئيل وايه کنه څنګه ښيزمې اخستلې دې؟هغه ئې تعريف اوکړواودهغه ځانې نه بهرته لاړو.الله تعالى نه ئې دعااوکړه اواوئې وئيل!اې الله!زمادې ملګری په زردیناره باندې ددنيامحل واخستلو،اوزه دستانه داخرت محل غواړم.زه دستاپه نوم باندې په غريبانانوکښې دازردیناره تقسيموم.نوهغه زردیناره دالله په لارکښې خرچ کړې.بياهغه دنيادارسړی څه وخت پس زردیناره خرچ کولوباندې خپله نکاح اوکړه به دعوت کښې ئې هغه خپل زوړملګرې هم رااوغوښتلواوورته ئې اووئيل چه زردیناره باندې مادې ښځې سره واده اوکړو،هغه دهغې هم تعريف اوکړو.بهرنې دالله په لارکښې زردیناره ورکړل اوعرض ئې اوکړويااالله!زمادغه ملګری هم دغه دینارونه خرچ کړل اوپه دنياکښې ئې پرې ښځه حاصل کړه اوزه دستانه حورعين غواړم.اوبيائې هغه پيسې صدقه کړې.بياڅه وخت پس هغه دنيادارکس دې راوغوښتلو اوورته ئې اووئيل چه په دوه زره دنياره باندې مادادوه باغونه اخستلي دی اوګوره څنګه دی؟ هغه ئې ډيرتعريف اوکړواوبهرنې دخپل عادت مطابق دالله تعالى په دربارکښې عرض اوکړو اې الله!زمادې ملګری خوپه دوه زره ديناره باندې دلته دوه باغونه واخستل اوزه دستانه په جنت کښې دوه باغونه غواړم اودادوه زره دينارونه دستاپه نوم صدقه کوم.نوهغه پيسې په غريبانانوکښې تقسيم کړې بياچه کله هغوی دواړه وفات شول.داصدقې کولووالاکس ېې دجنت محلونوته بوتلو،چه هلته ورته يوه خانسته ښځه ملاؤشوه،اودوه باغونه ورته هم ملاؤ شول،اوهغه نعمتونه ورته ملاؤشول کوم باره کښې چه هغه دالله تعالى نه علاوه څوك نه پيژني.نوهغه ته هغه وخت خپل ملګری راپادشو فرښتې ورته اووئيل چه هغه خوپه دوزخ کښې دې.که ته غواړې نوهغه ته کتلې شې،هغه چه کله هغه په دوزخ کښې

(۱) الطبری : ۵۲/۲۱.

په سوزيدواوليدلو.نوهغه ته ني اوونيل چه نزدې وه چه تاماته هم دهوکه راکړې وه اوداخوداالله تعالى مهرباني وه چه زه بچ شوم.(۱)

اوپه روايت کښې دى چه درې درې زره ديناره وو،يوکافرواوبل مومن وو.کله چه دې مومن خپلې پيسې دالله په لارکښې خرچ کړې نوپه سر ئې څادرواچلواوکوداله بيلچه ئې واخستله اومزدورئ ته لاړو،هغه ته يوکس ملاو شواوورته ئې اوونيل که ته زماخناورلشې،اودهغوى سوتې صفاکوې نوزه به تاته دځکلودپاره پې درکوم.هغه اومنله اودهغه سره کارته لاړو.خوداکس ډيربې رحمه اوبدګمانه وو،چه هغه يوخناوربيمارياکمزورې اوليدونو د غريب نوکربه ئې خټې ماتولواوهغه به ئې وهلو،اوونيل به ئې چه ته ددوى نه خوراك پټوې.دې مسلمان داسختئ برداشت نه کړې شوه نويوه ورخ دده په زړه کښې خيال راغې چه زه دهغه خپل شريك کافرته لاړشم،دهغه پټې اوباغونه دى.زه به هلته کارکوم اوهغه به ماته ډوډې راکوى،نورزماڅه پکاردى؟هغه چه هلته اورسيدونودهغه حالت شان شوکت ئې اوليدل نوحيران شو.يولوې محل وو،دربان اوپهره داره ولاړوو،څوکيداران،غلامان اووينزې ټول وو.دې ويريدواودربارياڼودې اونيولو.ده ورته ډيراوونيل چه تاسوخپل مالك ته زماذکراوکړئ.هغوى اوونيل اوس وخت نه دې.ته يوطرف ته پريوځه،چه کله سحرکښې هغه راوخى نوته ورته سلام اوکړه.که ته رښتوني ئې اوهغه اوپيژندلې نوصحيح ده ګنې مونږدتاسره اوګورو.هغه مسکين هم داسې اوکړل، د کمبل کومه ټکره چه هغه دبدن نه تاوکړې وه هغه ئې په ځان واچوله،اويوطرف ته سملاستو.دسحرپه وخت کښې دهغه په لارکښې اودريدو.چه کله هغه راووتلونوپه حيرانتياسره ئې ورته اوونيل داڅه حالت دې جوړشوې دې مال دې څه شو؟هغه اوونيل بس تپوس مه کوه!داوخت چه زماڅه کاردې هغه پوره کړه،يعنى ته ماته موقع راکړه چه زه ستاپه پټوکښې دنوروم‌زدورانوپه شان کارکوم اوته ماته به بدله کښې ډوډې راکوې اوچه کله مې داکمبل زوړشى نوماته يوه بله کمبل واخلې.هغه اوونيل نه نه زه به تاسره ددې نه ښه سلوك کوم.خوته مخکښې دااووايه چه هغه پيسې دې څه کړې؟جواب ئې ورکړوچه ماهغه پيسې يوکس ته قرض ورکړې،هغه تپوس اوکړوچه څنګه؟داسې کس ته چه هغه واپس کولوباندې انکارهم نه کوى اونه دورکولونه انکارکوى.هغه اوونيل چه داڅوك دې؟هغه اوونيل چه هغه الله تعالى زمااوستارب دې.دې اوريدوسره کافرمسلمان نه خپل لاس خلاص کړو،هغه ته ئې اوونيل ليونيه! داهم کيديشى چه کله مونږمړه اوخاورې شونوبيابه ژوندى شواوالله تعالى به مونږته بدله راکړى؟څه چه ته دومره ساده ئې اوستاداسې عقيده ده نوبيازماتاسره هيڅ څه تعلق نشته.نوهغه کافرخومزې کولې.اودې مومن په سختئ سره ورځې تيرولې.تردې چه دواړه مړه شول.مسلمان ته چه په جنت کښې کوم نعمتونه اورحمتونه ملاوشول هغه دشمار اواوندازې نه بهروو.هغه چه اوليدل چه دټولې دنيازيات باغونه دى اوونې دى اوخانې په خانې نهرونه دى،نوتپوس ئې اوکړوداڅادپاره دى؟جواب ورته ملاوشوچه داټول هرڅه دستادپاره دى.اونې ونيل سبحان الله!داخوداالله تعالى لويه مهرباني ده.اوس چه لږمخکښې لاړونودومره زيات غلامان اووينزې دى چه شمارلې کيدې نشى.تپوس ئې اوکړوچه دادچادپاره دى؟ورته اوونيلى شوچه ټول دستادپاره هغه نورهم حيران اوخوشحاله شو.بياچه مخکښې لاړونودسرويانوتومحل ورته ښکاره شو.ديوملغلرې نه جوړمحل اوپه هريومحل کښې ډيرې حورعين،ورسره ورته خبراوشوچه داستادى،هغه بيانورهم خوشحاله شو.اونې ونيل چه زماهغه کافردوست به څنګه اوچرته وى؟ الله تعالى به هغه ته اوښائى چه هغه به په دوزخ کښې سوزى.اوس به دوى کښې دوه خبرې اوشى دکوموذکرچه دلته شوې دې،بس په مومن باندې په دنيا کښې سختئ راتلې،هغه به دې يادوى نودمرګ نه غته سختى به هغه ته بله نه ښکارى.

---

(۱) الطبرى : ۵٤/۲۱.

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَذٰلِكَ | خَيْرٌ | نُّزُلًا | أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ ۝ |
| آیا دا خیز | بهتره دي | په لحاظ د میلمستیا سره | او که ونه دزقوم |
| آیا دا میلمستیا بهتره ده \| او که د زقوم ونه ؟ | | | |
| إِنَّا جَعَلْنٰهَا | فِتْنَةً | لِّلظّٰلِمِيْنَ ۝ | إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ |
| مونږ جوړه کړې ده دا ونه | یوه فتنه | دپاره دظالمانو | بیشکه داونه ده \| چې رااوخي |
| مونږ دغه دظالمانو دپاره د عذاب یوه فتنه جوړه کړې ده \| دغه یوه داسې ونه ده \| چې د | | | |
| فِيْٓ أَصْلِ الْجَحِيْمِ ۝ | طَلْعُهَا | كَأَنَّهٗ | رُءُوْسُ الشَّيٰطِيْنِ ۝ |
| په مینځ ددوزخ کښې | غنچې ددې داسې دی | لکه چې هغه | سرونه دی \| دشیطانانو |
| دوزخ په ویخ کښې راټوکیږي \| دهغې غونچه داسې ده لکه د مارانو ججې | | | |
| فَإِنَّهُمْ | لَاٰكِلُوْنَ | مِنْهَا | فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا |
| پس بې شکه هغوئ | خامخا خوړونکي دی | دهغې نه | پس ډکونکي دی هغوئ \| دهغې نه |
| نودوئ بهٔ دهغې نه خوراک کونکي وی \| او هم د هغې نه به خیټې ډکونکي وی | | | |
| الْبُطُوْنَ ۝ | ثُمَّ إِنَّ | لَهُمْ عَلَيْهَا | لَشَوْبًا |
| خیټو خپلو لره | بیا \| بې شکه | هغوئ لره به \| په هغې دپاسه | خامخا یو خانې کیدل وی |
| بیا ورته د هغې دپاسه ویشدلې خړبوژنې اوبه ورکولې شي | | | |
| مِّنْ حَمِيْمٍ ۝ | ثُمَّ إِنَّ مَرْجِعَهُمْ | لَاِلَى الْجَحِيْمِ ۝ | إِنَّهُمْ أَلْفَوْا |
| داوبو گرمونه | بیا بې شکه \| واپس دهغوئ به | خامخا دوزخ ته وی | بیشکه دوئ \| او موندل |
| بیا به دوزخ طرف ته د دوی واپس گرځیدل وی \| بیشکه دوئ خپل مشران | | | |
| اٰبَآءَهُمْ | ضَآلِّيْنَ ۝ | فَهُمْ | عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ يُهْرَعُوْنَ ۝ |
| پلاران خپل | گمراهان | پس دوئ | په نقش قدم دهغوئ باندې \| منډې وهی |
| گمراه موندلی وو \| نو دوئ هم د هغوی په قدمونو باندې منډې وهلې \| | | | |

**قوله تعالى:: أَذٰلِكَ خَيْرٌ نُّزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ ۝**

**دزقوم ونه:** دجنت دنعمتونوذکرنه پس ارشادفرمائی چه اوس دې خلق په خپله فیصله اوکړی چه هغه خانې اوهغه نعمتونه ښه دی یادزقوم ونه چه هغه به ددوزخیانوخوراک وی.ممکنه ده چه ددې مطلب خاص یوه ونه وی اوپه ټول دوزخ باندې خوره وی.څنګه چه دطوبی ونه ده،چه هغه دجنت یویومحل ته رسیدلې ده اوداهم ممکنه ده چه دزقوم یوه ونه نې مطلب وی.ددې تائیدپه دې آیت ﴿لَاٰكِلُوْنَ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّوْمٍ﴾ نه هم کیږی.مونږهغه دظالمانودپاره فتنه جوړه کړه.حضرت قتادهؒ فرمائی چه دزقوم دونې ذکر دګمراهانودپاره فتنه شوه.هغوی اوونیل نورهم واوره.په اورکښې ونه؟اورخوونه سیزی،دانبی وائی چه په دوزخ کښې به ونه راخیژی،نوالله تعالی اوفرمائیل،اوداونه به په اورکښې پیداکیږی اوددې خوراک به اوروی.ابوجهل ملعون به په دې خندل،اوونیل به نې چه ښه په مزې سره کهجورې اوکوچه

خوري. ددې نوم زقوم دې.نوداهم يوامتحان دې بنه خلق ددې نه ويريدل اوخراب خلقودې پورې خنداوکړه. څنګه چه فرمان دې.﴿ وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيْٓ اَرَيْنٰكَ﴾ يعني مونږچه تاته څه اوخودل هغه صرف ددې دپاره چه دهغوی ازميښت اوشي،اوپه دې وجه موددې نامبارکې ونې ذکراوکړو.مونږخوهغوی ويروو خو دوی په نافرمانۍ کښې نورهم زياتيږي.ددې ونې اصلي جرړه دوزخ دې،ددې پاڼې،اوښاخونه غونچې خطرناکې ويرونکې،اوږدې،اولړې لړې پورې خورې دشيطانانود سرونوپه شان دی.اوشيطان هم چانه دې ليدلې،خودهغه نوم اوری دهغه دبدشکلۍ اوخباثت منظرمخې ته راځي.چه په ليدو اوڅکلو کښې دظاهراوباطن نه خراب څيزدې.داهم وئيلې شوی دی چه دمارانويوقسم دې چه خوفناک اوخراب شکل والادی.اويوقول داهم دې چه دبوټويوقسم دې چه هغه ډيرخراب خوريږي.خودادواړه خبرې صحيح نه دی.خبره هم هغه ده کومه چه مونږمخکښې بيان کړې ده.هم دې بدشکله،څخه مزې والا،اوخراب اثروالازقوم به دوی دمجبوری نه خوري.اوپه زوربه دوی باندې خوړلې شی چه هغه پخپله يوزبردست عذاب دې.اوپه ايت کښې دی.﴿ لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ اِلَّا مِنْ ضَرِيْعٍ ۝﴾ دهغوی خوراک به هلته صرف دازغووالازقوم وی چه هغه به نه دوی غټولې شی اونه به ددوی ولږه ختمولې شی.حضورﷺ يوځل دايت ﴿اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقَاتِهٖ﴾ تلاوت اوفرمائيلو،چه که دزقوم يوه قطره ددنيايه سمندرکښې واچولې شی نوددنياد ټولوخلقوخوراک به خراب شی.نودهغه به څه حال وی؟چه دهغه خوراک هم دغه وی[1].(ترمذی وغيره)

**قوله تعالى:: ثُمَّ اِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ ۝**

**د زقوم خوراک**: اوبيادې زقوم خوراک سره به دوی ته دڅکلودپاره ددوزخ ويشيدلې اوبه ورکړې کيږي، يا ددغه دوزخې ونې سره به ددوزخ اوبه ملاوکړې شی اوبه دوی باندې خوړلې اوڅکلې شی. دا ګرمې اوبه به هغه وی کومې چه به ددوزخيانودزخمونواووينې اوپيپ وغيره په شکل کښې راوتلې وی. او چه هغه به ددوی دسترګواوټولاروباندې راوتلې وی[2].حديث کښې دی چه کله به دااوبه ددوی مخې ته راوړې شی نودوی ته به سخت تکليف اورسي،اوډيره کرکه به ورته ورځی.اوچه کله به دادوی خولې ته نزدې يوړې شی نوددې لوږې به ددوی دمخ څرمن اوځيزی.اوچه کله دهغې ګوټ خولې ته لاړشی نودهغوی کولمې به کټ شی اودمتيازويه لاربه بهرطرف ته راوځي[3].(ابن ابی حاتم)

حضرت سعيدبن جبيرؒ فرمائي چه کله دوزخيان به دولږې شکايت اوکړی نوهغوی باندې زقوم اوخوړلې شی چه دهغې په وجه باندې به ددوی دمخ نه څرمن بالکل جداشی،داسې چه دهغه پيژندګلودهغه دمخ څرمن ته کتلونه پس وئيلې شی چه دافلانکی کس دمخ څرمن ده بياچه به کله تږې شی نودوی به چغې وهل شروع کړی نودويلې شوې اوسپنې په شان ګرمې اوبه دوی ته ورکړې شی،چه هغه مخ ته نزدې کولوسره به دمخ غوښه اوسيزی.اوټوله غوښه به تږې رااوغورځيږی.اوپه خيټه کښې به کولمې کټ کړی.دبره نه به دوسپنې په څټکونوباندې وهلې شی.اودبدن نه به ئې يويوعضواوغورځيږی اودوی به چغې وهی.فيصله کيدوسره به ددوی ځانې دوزخ وی.چه هلته به په دوی باندې مختلف قسمه عذابونه وی[4].څنګه چه په بل ايت کښې دی.﴿ يَطُوْفُوْنَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيْمٍ اٰنٍ ۝﴾ دوی په دوزخ اوداورپه شان ګرمواوبوکښې چکرونه وهی.دحضرت عبداللهؓ قراءت دې. ثُمَّ اِنَّ مقيلهم لالى الجحيم

---

[1]) ترمذی کتاب صفة جهنم باب ماجاء فی صفة شراب اهل النار:۲۵۸۵. وهوصحيح.

[2]) الطبری : ۵٤/۲۱.

[3]) ترمذی کتاب صفة جهنم باب ماجاء فی صفة شراب اهل النار::۲۵۸۳. وسنده حسن.

[4]) الطبری : ۵٦/۲۱.

دحضرت عبدالله‌ؓ فرمان دي،چه په والله دنيمې ورځ نه به مخکښې دواړه خلق خپل خپل ځايونوته لاړشي اودغرمې قيلوله يعني ارام به هلته کوي.قرآن واني.﴿ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّةِ يَوۡمَئِذٍ خَيۡرٌ مُّسۡتَقَرًّا وَّاَحۡسَنُ مَقِيۡلًا ﴾ چه دجنتيانودقيام او آرام ځاې ډيربنه دې،اودقيلولې وخت به دواړه په خپل خپل ځاې کښې کوي.دنيمې ورځ نه به مخکښې مخکښې دوی خپل خپل ځايونوته اورسي.په دې وجه باندې دلته دلفظ ثم خبرباندې دخبر دعطف دپاره وی.ددې بدله ده چه دې خلقوخپل پلارنيکه ګمراه ليدلې وو.خوبياهم دهغوی په طريقه باندې روان شول.اودمجبورانواوبې وقوفانوپه شان هغوی پسې روان وو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدۡ ضَلَّ | | | | | |
| او ګمراهه شوی وو | | | | | |
| او ددوئ نه ............ | | | | | |
| قَبۡلَهُمۡ | اَكۡثَرُ الۡاَوَّلِيۡنَ ۙ | وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا | فِيۡهِمۡ | مُّنۡذِرِيۡنَ ۞ | |
| مخکښې دهغوئ نه | اکثر ړومبني خلق | او ليږلي وو مونږه | په هغوئ کښې | ايرونکي (خبردارونکي) | |
| وړاندې هم زيات پخواني خلق ګمراه شوی وو | او مونږ هغوئ ته هم ويرونکی ليږلي وو | | | | |
| فَانۡظُرۡ | كَيۡفَ كَانَ | عَاقِبَةُ الۡمُنۡذَرِيۡنَ ۙ | اِلَّا | عِبَادَ | اللّٰهِ |
| پس اوګوره | څرنګې وو | انجام ديرولي شوو خلقو | مګر بچ شوی دی | بندګان | دالله |
| نو ته اوګوره چې دهغه خلقو انجام څه شو ؟ | سوا دالله ﷻ د خاص | | | | |
| الۡمُخۡلَصِيۡنَ ۞ | | | | | |
| خالص کړې شوی | | | | | |
| بندګانو نه (باقي نورټول هلاک شول) | | | | | |

دنيکانو بنه انجام: په مخکښې امتونوکښې اکثرخلق ورکې لاروالاوو،دالله تعالی سره به شريک پيدا کړل.په هغوی کښې هم دالله تعالی رسولان راغلل،کوموچه هغوی هوښيارکړل اوويرول اوورته ئې اووئيل چه دهغوی په شرک کفراورسول الله ﷺ پسې خنداباندې الله تعالی خفه دې،اوکه تاسوتهيک نه شوئ نوبه تاسوبه عذاب راشي.چه بياهم هغوی دنبيانواونه منله اوخراب کارونه ئې پرې نه خودل. نو اوګورئ چه دهغوی انجام څه وو؟هغوی ئې تباه وبربادکړل.نيک اودالله والاخلق بچ کړی شول،اوهغوی ئې دعزت سره اوساتل.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَقَدۡ | نَادٰنَا | نُوۡحٌ | فَلَنِعۡمَ |
| او په تحقيق سره | آواز اوکړو مونږ ته | نوح عليه السلام | پس خامخا بنه |
| او نوح عليه السلام مونږ ته آواز اوکړو | نو مونږ ډير بنه فرياد | | |
| الۡمُجِيۡبُوۡنَ ۞ | وَنَجَّيۡنٰهُ | وَاَهۡلَهٗ | مِنَ الۡكَرۡبِ |
| جواب ورکونکي يو مونږه | نو بچ کړو مونږه هغه | اوکور والا دهغه | دمصيبت |
| رس يو | او مونږ هغه اودهغه د کور خلقو نه د لوئې غم نه نجات ورکړو | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْعَظِيْمِ ۝٧٦ | وَجَعَلْنَا | ذُرِّيَّتَهٗ | هُمُ | الْبٰقِيْنَ ۝٧٧ | وَتَرَكْنَا |
| لوئ نه | اواوګرځول مونږه | اولاد دهغه | هم هغوئ | باقي پاتې كيدونكي دي | اوپريښودومونږ صفت |
| ............او صرف دهغه اولاد مو باقي پاتې پريخودل | | | ...................اود روستو راتلونكو خلقو | | |
| عَلَيْهِ | فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝٧٨ | سَلٰمٌ | عَلٰى نُوْحٍ | فِي الْعٰلَمِيْنَ ۝٧٩ | |
| په هغه باندې | په روستو نسلونو كښې | سلام دې | په نوح عليه السلام | ددنيا په ټولو خلقو كښې | |
| دپاره مو دا واقعه پاتې پريخوده | ......چې په ټول مخلوق كښې دې په هغه سلام وئيلې شي | | | | |
| اِنَّا كَذٰلِكَ | نَجْزِي | الْمُحْسِنِيْنَ ۝٨٠ | اِنَّهٗ | مِنْ عِبَادِنَا | |
| بيشكه مونږه همدارنګې | بدله وركوؤ | نيكانو خلقو له | بيشكه هغه | زمونږ دبندګانو | |
| مونږ نيكانو ته هم دغه شان بدله وركوؤ | هغه زمونږ يو ايماندار بنده وو | | | | |
| الْمُؤْمِنِيْنَ ۝٨١ | ثُمَّ اَغْرَقْنَا | الْاٰخَرِيْنَ ۝٨٢ | | | |
| مومنانو نه وو | بيا ډوب كړل مونږه | هغه نور خلق | | | |
| بيامونو نور خلق (يعني كافران) غرق كړل | | | | | |

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ ۝**

**دنوح عليه السلام واقعه او دده قوم::** په مخكښني ايتونوكښې دګمراه خلقوسرسري ذكروو،په دې ايتوكښې ئې تفصيلي ذكردې. حضرت نوح عليه السلام خپل قوم كښې نهه نيم سوه كاله وواوهغوى به ئې پوهه كول خوديوخوكسانونه علاوه قوم ئې په ګمراهې كښې وواوچاايمان رانوړلوبلكه هغوى ته به ئې تكليفونه وركول.اخردالله تعالى رسول تنګ راغلو،اوالله تعالى ته ئې دعاوكړه اې الله‌ازه نورتنګ شوم ته زمامدداوكړې.دالله تعالى غضب په هغوى باندې نازل شو اوټول كافران ئې په اوبوكښې غرق كړل.نوفرمائي چه نوح چه كله تنګ شونوزمايه درباركښې ئې دعاوكړه.اومونږ خودعاګانې قبلونكي يو.بس دهغه دعامې قبوله كړه.اوهغه تكليفونه كوم به چه هغوى ته روزانه دكافرانونه رسيدل، مونږ ختم كړل.اوهم دهغه داولادنه مودنيابياجوړه كړه خكه چه هم دهغه بچي پاتې شوى وو.حضرت قتادة رحمه الله فرمائي چه ټول خلق دحضرت نوح عليه السلام داولادنه دى.([1])دترمذي په مرفوع حديث كښې ددې ايت په تفسيركښې دى چه سام،حام اويافث اولادبياخورشول اوباقي پاتې شو.([2])
مسندكښې هم دى چه سام دټولوعربوپلاردې،اوحام دټولوحبشواويافث دټولورروميانو.په دې حديث كښې روميانونه مراد رومبې روم دې يعني يونان،كوم چه درومي بن ليطى بن يونان بن نوح طرف ته منسوب دې.دحضرت سعيدبن مسيب رحمه الله ارشاددې.چه دحضرت نوح عليه السلام ديوخوى سام اولادعربي فارسي اوررومي دى([3]).اود يافث اولادتركي،صقالبه،اوياجوج ماجوج،اودحام اولاد قطبي، سوډاني، او بربري دى.والله اعلم.دحضرت نوح عليه السلام دبنه والي اودهغه نه روستو خلقوكښې ذكردخير پس دالله تعالى

---

[1]) الطبري : ٢١/٥٩.

[2]) ترمذي كتاب التفسير القران باب ومن سورة الصافات:.

[3]) احمد: ٥/٩. ترمذي حواله سابق.:٣٢٣١.

طرف نه ژوندي دي.دتولونبيانودرښتين ولي څه نتيجه وي،هروخت خلق په هغوی باندې سلام کوي،اودهغوی تعريفونه کوي(۱).په حضرت نوح عليه السلام باندې سلام،دالکه درارواني جملې تفسيردی.
يعنې دهغوی ذکربه والی نه روستوپاتې کيدودامطلب دی چه هرامت په هغه باندې سلام کوي.زمونږ دا سعادت چه کوم کس زمونږ عبادت اواطاعت دخلوص سره کوي نومونږهم دهغه به ذکرپه روستو خلقوکښې کوو.حضرت نوح عليه السلام ايمان اويقين اودتوحيدمنلووالاوو،اودحضرت نوح عليه السلام دخيردعوت قبلولو والوانجام به وو.خودنوح عليه السلام مخالف خلق غرق کړې شول.يوه ژوندې سترګه هم پاتې نه شوه. يو خبراورلرووالاهم پاتې نه شواونښه قدرې ئې پاتې نه شوه.اودهغوی بدې اوخرابياني پاتې شوې چه د هغې په وجه باندې دمخلوق په خولې باندې دهغوی خراب ذکرهروختې وي.

| |
|---|
| وَإِنَّ مِنْ شِيعَتِهِ |
| او بيشکه \| يو دډلې دهغه نه \| |
| اودهغه په طريقه روانو خلقو کښې |
| لَإِبْرَاهِيمَ ﴿٨٣﴾ إِذْ جَاءَ رَبَّهُ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴿٨٤﴾ إِذْ قَالَ |
| خامخا ابراهيم وو \| کله چې راغې هغه \| رب خپل ته \| په زړهٔ سلامت سره \| کله چې اووئيل هغه \| |
| ابراهيم عليه السلام هم وو \| چې رب ته په صفا روغ زړه متوجه شو \| ..................څه وخت چې هغه خپل پلار |
| لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَاذَا تَعْبُدُونَ ﴿٨٥﴾ أَئِفْكًا آلِهَةً |
| پلارا خپل ته \| او قوم خپل ته \| داڅه څيزونه دي \| چې تاسو ئې عبادت کوئ \| آيا د دروغو خدايان |
| اوخپل قوم ته اووئيل \| چې تاسو دڅه څيزعبادت کوئی ؟ \| آيا د الله ﷻ نه سوا ځان دپاره د |
| دُونَ اللَّهِ تُرِيدُونَ ﴿٨٦﴾ فَمَا ظَنُّكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٨٧﴾ |
| بې دالله نه \| غواړئ تاسو \| پس څه دي ګمان ستاسو \| په رب العالمين باندې \| |
| دروغو معبودان لټوئ \| نودرب العالمين په حق کښې ستاسو څه خيال دی \| |

**قوله تعالى: وَإِنَّ مِنْ شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ**

**دحضرت ابراهيم عليه السلام ذکر:** حضرت ابراهيم عليه السلام هم دنوح عليه السلام په دين باندې وو.دهغوی په طريقه اوچال ډهال باندې وو.دخپل رب خواه ته ئې سلامت زړه يعنې دتوحيدوالاکوم چه دالله تعالى رښتياوالې منې،دقيامت راتلل منې،دمړوبياژوندی کيدل منې،دشرك اوکفرنه بيزاره وي،په نوروخلقوباندې لعنت نه واني،يورلو.(۲)خليل الله دخپل ټول قوم اوپلارنه صفاانکاراوکړو.چه تاسوداچاته سجدې کوئ؟دالله تعالى نه علاوه دنوروبندګۍ پريږدئ،اودخپل باطل معبودانو بندګۍ پريږدئ.ګنې الله تعالى به دتاسوسره څه اونه کړي،اوتاسوته به سختې سزاګانې درکړي.

| |
|---|
| فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ ﴿٨٨﴾ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ ﴿٨٩﴾ فَتَوَلَّوْا عَنْهُ |
| بيا نظرئې وکړو هغه يونظر \| په ستورو کښې \| پس وې وئيل \| چې زهٔ ناجوړه يم \| پس اوګرځيدل هغوئ \| دهغه نه |
| بيا ابراهيم عليه السلام شا طرف ته اوکتل \| اودائې اووئيل چې زه ناجوړه يم غرض دا چې هغوئ تري لاړل |

(۱) الطبرى : ۶۰/۲۱.
(۲) الطبرى : ۶۳/۲۱.

مُدْبِرِيْنَ۝ فَرَاغَ اِلٰٓى اٰلِهَتِهِمْ فَقَالَ اَلَا تَاْكُلُوْنَ۝

شاکونکی هغه ته | پس پټ ورغی | معبودانو دهغوئ ته | پس وي وئیل | آیا تاسو نهٔ خورئ( دا طعام)

روان شو||ابراهیم دهغوئ معبودانو ته ورغلو|نو ورته ئې اووئیل چې آیا تاسو خوراک څکاک نه کوئې

مَا لَكُمْ لَا تَنْطِقُوْنَ۝ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِيْنِ۝

څه اوشو په تاسو | چې خبری نهٔ کوی | پس ورغی په هغوئ باندې | په وهلو سره | په ښی لاس

داخه درباندې شوی دی ؟ | تاسو خبرې هم نه کوئ؟ ابیائې په ښی لاس پوره قوت سره د هغوی ماتول شروع کړل

فَاَقْبَلُوْٓا اِلَيْهِ يَزِفُّوْنَ۝ قَالَ اَتَعْبُدُوْنَ مَا

پس راغلل هغوئ| دهٔ ته | چې منډې ئې راوهلې | اووئیل هغه | آیا تاسو عبادت کوئ| دهغه څیزونو

نو ورته واپس په منډو راغلل|.................... ابراهیمؑ اووئیل چې تاسو دهغه بتانو عبادت کوئې

تَنْحِتُوْنَ۝ وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ وَمَا

چې تاسو ئې تراشئ (په لاسونو) | او حال دا چې الله | پیدا کړی یئ تاسو | او هغه څیزونه

چې په خپلو لاسونو ئې تراشئ | اوحال دا دې چې الله تعالی تاسو اوستاسوجوړ کړې څیزونه هم

تَعْمَلُوْنَ۝ قَالُوا ابْنُوْا لَهٗ بُنْيَانًا فَاَلْقُوْهُ

چې تاسو ئې جوړوئ |اووئیل هغوئ | جوړ کړئ | دپاره ددهٔ | یو غټ خانې (دوور) | پس اوغورزوئ دا لره

پیدا کړی دی | ..............هغوئ اووئیل چې دهٔ دپاره اور تیا رکړئې | ..............نو دې

فِى الْجَحِيْمِ۝ فَاَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ

دوور په سرو لمبو کښې | پس اراده اوکړه هغوئ | دهغه سره|دیو کار کولو |پس اوګرځول مونږه هغوئ

بل اور کښې وراوغورزوئ | ..........نو هغوئ د ابراهیمؑ خلاف سازش شروع کړو

الْاَسْفَلِيْنَ۝

ښکته (ذلیله) |

نو مونږ هغوئ ناکامه کړل|

**قوله تعالیٰ:: فَنَظَرَ نَظْرَةً فِى النُّجُوْمِ۝**

**دحضرت ابراهیم بتان ماتول:** حضرت ابراهیمؑ خپل قوم ته دادې دپاره اووئیل چه کله دوی خپله میله کښې شرکت دپاره لاړشی نودې په عبادت خانه کښې یواځې پاتې شی اوهغه ته به د بتانو ماتولو موقع ملاوشی.په دې وجه باندې یوه ربښتونې خبره اوکړه خودهغې مطلب باندې هغوی پوهه نه شول او ابراهیمؑ ترې خپل دینی مقصد واخستلو.هغوی خودخپلې عقیدې مطابق ابراهیمؑ په ربښتیا باندې بیمار ګنړلو اوهغه ئې پریخودو اولاړو.حضرت قتادهؒ فرمائی چه کوم کس په څه کار کښې غوراوفکر کولونوعرب به وئیل چه ده په ستورو باندې نظرونه واچول.مطلب داچه دغوراوفکر سره به ئې ستوروته کتل اوسوچ به ئې کولو چه داځنګه پریږدم؟سوچ کولونه پس به ئې اوفرمائیل چه سقیم یعنی بیمار یم.

**د ابراهيم ﷺ د دريو دروغو مطلب:** په يوحديث كښې راغلي دي چه حضرت ابراهيم ﷺ صرف دري دروغ ونيلي دي، چه په هغې كښې دوه خله دالله تعالى ددين دپاره، چه په هغې كښې ئې يوخل فرمائيلي دي.
﴿إِنِّي سَقِيمٌ﴾ اودويم ئې فرمائيلي دي ﴿قَالَ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا﴾ اودهغوی حضرت ساره ته خپله خور ونيل. (۱) خو دا ياد ساتل پكاردي، چه په دې كښې يوهم حقيقي دروغ نه دي. دې ته مجازا دوروغ ونيلي كيږي. په كلام كښې داسې څه عذرشرعي مقصد حاصلولو دپاره دروغوكښې داخل نه دي. ځنګه چه په حديث كښې دي چه عذرپه دروغوكښې نه دې داخل، اوددې نه بې نيازه كونكې دي. (۲) په ابن ابى حاتم كښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه دحضرت خليل الله په دې درې وارو كلماتو كښې يوه هم داسې نه ده چه دهغې نه دالله تعالى ددين بنه والې مطلب نه وو.
حضرت سفيان رحمه الله فرمائي "زه بيماريم" نه مطلب ماته طاعون دې، اوهغه خلق به دداسې مرض نه تختيدل. دحضرت سعيد رحمه الله بيان دې چه دالله تعالى ددين تبليغ اودهغوی ددروغو معبودانو ترديد كولو دپاره دالله تعالى دخليل داحكمت عملي وه چه يوستورې راختلوسره به ئې ونيل چه زه بيماريم.
نورو هم داليكلي دي چه زه بيماركيدونكې يم. يعنى خامخا يوخل مرض الموت راتلونكې دې. اوداهم ونيلي شوى دي چه مريض يم. يعنى زمازړه دستاسودبتانوعبادت نه بيماردې.
حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائي چه كله دابراهيم ﷺ قوم ميلې ته تلونوابراهيم ﷺ ئې هم مجبور كولو، نوابراهيم ﷺ روستوشواواوئې فرمائيل چه زه بيماريم اوداسمان طرف ته ئې كتل شروع كړل. چه كله هغوی لاړل اوابراهيم ﷺ يواځې پاتې شونوبه يواځې والى كښې ئې دهغوی ټول بتان مات كړل. هغوی خوټول خپل اخترته لاړل اوابراهيم ﷺ زرزردهغوی بتان ته لاړو. اول خونې اوفرمائيل چه ولى جناب تاسوخوراك ولې نه كوئ؟ دلته راتلوسره حضرت ابراهيم ﷺ اوليدل چه كوم څيزونه هغه خلقودوى باندې ايخودې ووهغه هم هغه شان پراته وو. هغه خلقوچه دتبرك دپاره كومې قربانيانې دلته كړې وې هغه هم هغه شان پرتې وې. دابت خانه ډيره زياته لويه اومزيداره وه. ددروازې خواكښې يوډيرلوې بت وواودهغه نه ګيرچاپيره واړه اوبيادهغوی نه واړه بتان وو، ټوله بت خانه دبتانونه ډكه وه. دهغوی سره مختلف قسمه خوراكونه پراته ووچه هغه په دې مقصدسره ايخودلې شوې ووچه دلته پروت والى سره به بركت والاشى اوبيابه ئې مونږاوخورو. ابراهيم ﷺ ته چه دخپلې خبرې جواب ملاونه شونواوئې فرمائيل داپه تاسوڅه شوى دي؟ خبرې ولې نه كوئ؟ اوس دخپل بنه لاس پوره قوت سره ئې هغوی وهل شروع كړل اوټكړې ټكړې ئې كړل، اولوې بت ئې پريخودوچه شك په هغه اوشى ځنګه چه په سوره انبياء كښې ټوله واقعه تيره شوې ده اوپه هغې كښې تفسيرهم بيان شوې دې. بت پرست چه كله دخپلې ميلې نه واپس شول اوبت خانې ته داخل شول اوئې ليدل چه دهغوی ټول بتان مات اوټكړې پراته دي، دچالاس نشته، دچاخپه نشته، دچاسراودچابدن نشته. حيران شول چه داڅه شوى دي؟ اخر د سوچ اوبحث نه پس نه ئې معلومه كړه چه دابه دابراهيم كاروى. اوس ټول دخليل الرحمن طرف ته ډير غصه اوپه منډه لاړل. خليل ته دتبليغ ګولواوملامته كولويوه بنه موقع ملاوشوه ورته ئې اوونيل چه ولې دداسې څيزونوعبادت كوئ، كوم چه تاسوپخپله جوړوئ، په خپل لاس ئې جوړوئ اوتراشئ، اودا ستاسواوستاسودعملونوخالق الله تعالى دې. ممكن ده چه دې ايت كښې مامصدروى، اوداهم ممكن ده چه د ،،الذى،، په معنى كښې وى. خوپه دواړومعنوكښې تلازم دې يعنى اول زيات ظاهردې. نوامام بخارى رحمه الله په كتاب افعال العباد كښې يومرفوع حديث نقل كړې دې چه الله تعالى هرصانع اود هغه د

۱) صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى (واتخذالله ابراهيم خليلا) :۳۳۵۸ ، صحيح مسلم: ۲۳۷۱.
۲) الادب المفردات للبخارى : ۸۵۷، وسنده صحيح .

صنعت پیداکوی([1]).بیا چې کله ددوئ سره حجت ختم شو او دابراهیم ﷺ دسوال صحیح جواب هغوی سره نه وو،نوهغوی په دشمنی اوسختی شروع کړه اوئې ونیل یوبنیان جوړکړئ په هغې کښې اوراولړوئ،اوپه هغه اورکښې دې واچوئ.نوهم دغه شان اوشول.خوالله تعالی خپل خلیل بچ کړو.هغه ته ئې غلبه ورکړه اودهغه مددئې اوکړو.اګرچه هغوی هغه ته برائی رځول غوښتل خوالله تعالی هم هغوی خواراوذلیل کړل.

وَقَالَ اِنِّيْ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ ۝

| اواووئیل ابراهیم | بیشکه زهٔ | تلونکې یم | رب خپل ته | لاره به اوښائي ماته

|اوابراهیم اووئیل چې زه خپل رب طرفته روان یم اهغه به ماته نیغه لاره اوښائي

رَبِّ هَبْ لِيْ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيْمٍ ۝

اے ربه زما | راکړه ماله (خوئې) دصالحانونه | پس زیرې ورکړو مونږ هغه ته|په یوهلك صبرناك سره

ائې زماربه ! ماته یو نیک خوئې راکړه | ............نو مونږ هغه ته دیو صابره هلک زیرې ورکړو

فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ قَالَ

پس هر کله چې| اورسیدو هغه،خوئې | دهغه سره | دمنډو ترړو عمر ته | نو اووئیل ابراهیم |

نو څه وخت چې هغه دخپل پلار سره دګرځیدو عمر ته اورسیدو | نو ابراهیم ﷺ ورته اووئیل چې

يٰبُنَيَّ اِنِّيْ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ

اے خویه زما | بیشکه زهٔ | وینم | په خوب کښې | چې زهٔ | ذبحه کوم تالره | پس تهٔ هم نظر اوکړه |

ائې څویه ! زه په خوب کښې وینم چې تا ذبح کوم | نو ته هم سوچ اوکړه | (اوماته اووایه)

مَاذَا تَرٰى ط قَالَ يٰٓاَبَتِ افْعَلْ مَا

چې څهٔ وینې تهٔ په خیال خپل کښې | اووئیل هغه | اے پلاره زما | اوکړه تهٔ | هغه |

چې ستا څه رائې ده | ................هغه (څوئې) اووئیل چې ائې بابا ! تاته چې څه حکم شوې

تُؤْمَرُ سَتَجِدُنِيْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِيْنَ ۝

چې حکم کیدې شی دهغې | او به مومې تهٔ ماله | که اوغواړئ الله | دصبر کونکونه |

دې هغه په ځائې کړه | ..............انشاء الله مابه صبر کونکې بیا مومې

فَلَمَّآ اَسْلَمَا وَتَلَّهٗ لِلْجَبِيْنِ ۝ج وَنَادَيْنٰهُ

پس هر کله چې | غاړه کیښوده دواړو | اووانئې چوړ هغه | پرمخې په تندی | او آواز کړو مونږ هغه ته

بیا چې دې دواړو دالله ﷻ حکم اومنلو | اوهغه (څوئې) ئې په پړ مخې څملولو|اومونږ ورته اواز اوکړو

اَنْ يّٰٓاِبْرٰهِيْمُ ۝لا قَدْ صَدَّقْتَ الرُّءْيَا ج اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي

چې اے ابراهیم | رښتیا کړو تا | خوب خپل | بیشکه مونږه | دارنګې | بدله ورکوو

چې ائې ابراهیم ﷺ ! تاخوب واقعی رښتیا کړو | بیشکه مونږ نیکانو بندګانو ته هم دغه شان

[1] خلق افعال العباد للبخاری :۱۱۷، السنة لابن ابی عاصم: ۳۵۸. وسنده صحیح.

الْمُحْسِنِيْنَ۝ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِيْنُ۝ وَفَدَيْنٰهُ

نېکانو خلقو له| بیشکه دا (ذبحه) | خامخا دا وو | ازمیښت ښکاره | او فدیه ورکړه مونږ هغه له

بدله ورکوو |........حقیقت دا دې چې دا یو ډیر لوئې امتحان وو| اومونږ ددې په بدله کښې

بِذِبْحٍ عَظِيْمٍ۝ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ۝

یو قربانی | لویه (جنتی ګډوري) | او پرېښودو مونږ |په هغه باندې صفت|په روستنو نسلونو کښې

ده ته یو لویه قربانی ورکړه | راتلونکو خلقو ته مو داخبره دده په تاریخ کښې باقي پرېښوده

سَلٰمٌ عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ۝ كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ۝ اِنَّهٗ

سلام دې | په ابراهیم باندې | دارنګې | بدله ورکوو مونږ | نیکانو خلقو له | بیشکه هغه |

بیشکه مونږ نیکانو بندګانو ته هم دغه شان بدله ورکوو| ................. بیشکه هغه

مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ۝ وَبَشَّرْنٰهُ بِاِسْحٰقَ نَبِيًّا

دبندګانو زمونږ مومنانونه وو | او زیرې ورکړو مونږ هغه ته | په اسحاق سره | یو نبی |

زمونږ د نیکانو بندګانو نه وو | اومونږ ابراهیم ته د اسحاق ﷺ زیرې ورکړو| چې نبی اوخوش نصیبه

مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ۝ وَبٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلٰٓى اِسْحٰقَ ط

د صالحانونه | او برکت کړې وو مونږه | په هغه باندې | او په اسحاق باندې|

به وی | .............او مونږ په هغه (ابراهیم ﷺ) او اسحاق ﷺ باندې برکتونو اوکړل

وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَّظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ مُبِيْنٌ۝ ع

او داولاد ددې دواړو نه| څوک نیکو کار دې | او څوک ظالم دې | په خان خپل باندې| ښکاره |

اودې دواړو په اولاد کښې نیکان خلق هم دی | اوپخپلو ځانونو باندې ښکاره ظلم کونکی هم

قوله تعالیٰ: وَقَالَ اِنِّيْ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ۝

ابراهیم ﷺ اوونیل زه خودخپل پروردګارطرف ته تلونکې یم.هغه به ضرورماته صحیح لاراوښائی.اې زمارب!ماته نیک بخت اولاد راکړې.نومونږهغه ته دښه بچی زیرې ورکړو.چه کله نې خوې دومره عمرته اورسیدوچه دهغه سره دګرځیدوشونوابراهیم ﷺ ورته اوونیل خوږه خویا زه په خوب کښی تاته پخپله حلالول وینم.اوس ته وایه دستاخه خیال دې؟خوی جواب ورکړوچه پلاره!چه کوم حکم کیږی هغه پوره کړې.انشاء الله ته به ماصبرکونکې وینې.غرض داچه دواړواومنله اوپلاردخوی تندې ښکول کړو. مونږورته اوازاوکړوچه اې ابراهیم بالکل تا خپل خوب رښتیاکړو.مونږنیکی کولووالوته هغه شان جزاء ورکوو.په حقیقت کښی دادهغه امتحان وو.اومونږیوه لویه قربانی دهغه په خپوکښی اوکړه.اودهغه دخیرذکرموپه روستوخلقوکښی پریخودو.په ابراهیم ﷺ دې سلام وی.مونږنیک کارونه کولووالاته هم هغه شان جزاء ورکوو.بې شکه هغه زمونږپه ایمان بندګانوکښی وو.مونږهغه ته داسحاق نبی زیرې ورکړوچه هغه د صالح خلقونه وو.اومونږپه ابراهیم اواسحاق باندې برکتونه نازل کړل.ددې دواړوپه اولاد کښی څه نیک بخت دی اوپه خپل نفس باندې ظلم کولووالادی.

**قوله تعالی: اِنِّیْٓ اَرٰی فِی الْمَنَامِ اَنِّیْٓ اَذْبَحُكَ فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰی ؕ**

**دحضرت ابراهیمؑ حضرت اسماعیلؑ ذبح کول:** خلیل الله چه کله دخپل قوم دهدایت نه راؤرلو په وجه خفه شو. لوې لوې قدرتی نخې لیدلونه پس چه هم هغوی ایمان راونه ړو،نوابراهیمؑ ترې جدا کیدل بنه اوګڼل اواعلان ئې اوکړوچه زه به اوس دستاسونه هجرت اوکړم.زمالاره خودنکې زماالله تعالی دې.اودخپل رب نه ئې داولاددعااوکړه.چه هغوی ته توحید کښې دابراهیمؑ مدداوکړی.هم هغه وخت دابراهیمؑ دعاقبوله شوه اودیوفرمانبرداره خوی زیرې ورته ورکړې شو.داحضرت اسماعیلؑ وو. هم دادحضرت ابراهیمؑ ړومبې خوې وواودحضرت اسحاقؑ نه مشروو.دې خواهل کتاب هم منی.اودهغوی په کتاب کښی دی چه داسماعیلؑ دپیدائش په وخت کښی دحضرت ابراهیمؑ عمرشپږاتیاکاله وو. اوکوم وخت چه اسحاقؑ پیداشونوهغه وخت ئې عمریوکم سل کاله وو.اودهغوی په خپل کتاب کښی داهم دی چه حضرت ابراهیمؑ ته دخپل خوی دذبح کولوحکم شوې وو.خوچونکه دا خلق ټپخپله دحضرت اسحاقؑ اولاددې اونبی الله اوذبیح الله اولادچونکه عربیان دی نوهغه خلقو دا فضیلت اواسماعیلؑ نه اخستلې دې اودحضرت اسحاقؑ سره ئې لږولې دې اودالله تعالی کلام کښی ئې فرق راوستې دې.اووائی چه زمونږپه کتاب کښی **وحیدک** دې ددې مطلب یواځې نه دې.بلکه څوك چه ستاسره داوخت دې هغه یواځې دې.ځکه چه حضرت اسماعیلؑ خوهغه وخت خپلې مورسره په مکه کښی وو.دلته دخلیل الله سره صرف اسحاقؑ وو.خودابالکل غلط دی. "وحیدك" هغه ته وئیلې کیږی کوم چه یواځې وی.دهغه بل څوك رورنه وی،دلته یوه خبره بله هم ده چه یواځې اوړومبی خوی سره څومره مینه وی اودهغه چه څومره نیازبین توب وی هغه دنور بچو کیدو باندې پاتې نشی.په دې وجه دهغه دذبح کولوحکم،یولوې امتحان اوازمیښت وو.مونږدامنو.

بعضې بزرګان هم دامنی چه ذبیح الله حضرت اسحاقؑ وو،تردې چه څه صحابه کرامو﵃ نه هم دا روایت دی،خوداخبره دکتاب اوسنت نه ثابت نه ده.اوداخیال کیږی چه دبنی اسرائیلومشهوره کړې خبره دې حضراتوهم بې دلیله منلې ده.لږ تګ نه دې پکاردالله دکتاب په الفاظوباندې غور اوکړئ، چه دحضرت اسماعیلؑ دزیری اعلان په غلام حلیم وئیلوسره اوشو.بیادالله تعالی په لارکښی دذبح کیدوتیاری ذکراوشو.دابیان ختمیدونه پس دحضرت اسحاقؑ دپیدائش ذکراغلې دې. اوفرښتو د اسحاقؑ دپیدائش زیردغلام علیم وئیلوسره اوکړو.هم دغه شان په قران کښی داسحاقؑ زیری سره ارشاد دې.﴿ وَمِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ یَعْقُوْبَ﴾ یعنی دحضرت ابراهیمؑ په ژوندکښی به دحضرت اسحاقؑ نه حضرت یعقوبؑ پیداشی.یعنی دهغه دنسل خوررولوخودمخکښی نه خبره کړې شوې ده اوس هغه څنګه ذبح کړې شی؟دامونږمخکښی هم بیان کړی دی.اودحضرت اسماعیلؑ صفت ئې دلته فرمانبرداری بیان کړې دې،چه هغه دذبح کولودپاره بالکل مناسب دې.

اوس حضرت اسماعیلؑ غټ شواودخپل پلارسره دتګ راتګ قابل وو،اسماعیلؑ هغه دخپلې مورسره په فاران کښی وو.حضرت ابراهیمؑ به هلته ته تلوراتلو.داهم ذکرشوی دی چه په به براق به تلواوددې جملې معنی داده چه دځوانې زمانه کښی وواودماشزموالی وخت تیرشوې وواودپلارپه شان دګرځیدواوکارکولوقابل وو.نوحضرت ابراهیمؑ په خوب کښی اولیدل چه هغه خپل خوږخوې ذبح کوی دنبیانوخوبونه به وحی وو،اوددې دلیل داایت دې،په مرفوع روایت کښی داهم دی.بس دالله تعالی رسول دخپل دزړه ټکړې دازمیښت دپاره اوبه دې وجه چه یوناساپه دهغه ذبح کولوپه هغه اونه ویریږی،خپله اراده او رائی په هغه باندې ظاهره کړه. هغه خوهم ددې ونې میوه وه.نبی ابن نبی وو.جواب ئې ورکړو.پلاره نوبیاناوخته کوې ولې دې خبروکښی دتپوس کولوڅه ضرورت دی؟کوم حکم چه شوې دې هغه زرپوره کړه اوکه زماباره کښی څه دررته څه شك وی نوچاړه کیده معلومه به دررته

شي چه زه څومره صبر کونکې یم.انشاء الله زما په صبرباندې به دستازړه خوشحاله شي.سبحان الله چه څه ئې ونیلي ووهغه ئې اوکړل.اوپه وعده باندې قائم اوسیدلوسرته ئې دالله تعالی نه حاصل کړو. او پلاراوځوې دواړه دالله دحکم پوره کولودپاره راضي شول.

قوله تعالى:: فَلَمَّآ أَسْلَمَا وَتَلَّهُۥ لِلْجَبِينِ۝

پلار اوځوې دواړه دالله ﷻ حکم ته تیار شو:: پلاردالله په لارکښې خپل ځوې ذبح کولودپاره اوځوې د الله په لارکښې خپل څټ کټ کولودپاره تیاریږي اوپلاردخپلوسترګونور،دزړه سره زمکه باندې په زمکه باندې التپه غورځوی چه دذبح کولوپه وخت کښې دهغه لاسونه سست نشي.

مسندکښې داحمدابن عباس‌رضي الله عنه نه روایت دې چه کله حضرت ابراهیم‌علیه السلام دسترګوتوردالله تعالی په حکم باندې بوتلونوهغه وخت کښې شیطان ئې مخې ته راغې.خوحضرت ابراهیم‌علیه السلام سره یې دهغه نه مخکښې اووتلو.بیادحضرت جبرئیل‌علیه السلام سره ابراهیم‌علیه السلام ته عقبه ته لاړونوهغه وخت بیاشیطان ئې مخې ته راغې،ابراهیم‌علیه السلام هغه په اووه کاڼوباندې اویشتو.بیادجمره وسطی خواه کښې ورته مخې ته راغې هغه وخت ئې بیااووکاڼې ویشتو.بیامخکښې شواوخپل ځورځوې ئې دالله په حکم باندې دذبح کولودپاره راسملولو،دذبیح په بدن باندې هغه وخت یوسپین څادروو.اوونې ونیل چه پلاردارانه کوزکړه چه دابیاماته کفن کړې.اوهغه وخت ځوې بربندولووخت کښې دپلارځه عجیبه حال وو.چه اوازراغې بس ابراهیم خوب دې ربښتیاثابت کړو.شاته ئې اوکتل نودشپین رنګ غټوغټو خکرو والا یو ګډئې اولیدو.حضرت ابن عباس‌رضي الله عنه فرمائي چه دغه وجه چه مونږدغه شان سندګان قربانوو.([1])

هم دحضرت ابن عباس‌رضي الله عنه نه په دویم روایت کښې دحضرت اسحاق‌علیه السلام نوم روایت شوې دی.خواولنې صحیح دې اوددې دلیلونه راځي،انشاء الله تعالی.دهغې په بدله کښې لویه قربانی الله تعالی ورکړه اوپه دغه باره کښې حضرت ابن عباس‌رضي الله عنه فرمائي چه داجنتی ګډه وه.چه هغې هلته د خلوینښتو کالو راسې وه.هغې لیدلوسره ابراهیم‌علیه السلام خپل ځوې پریخودواوهغې پسې شو.جمره اولی ته راورسیدو ،اووکاڼې ئې ویشتل بیااوتختیده اوجمره وسطی ته اورسیده.اووکاڼې ئې دلته ویشتل اوبیاجمره کبری سره اووکاڼې ویشتل اودهغه ځائې نه ئې منحرته راوسته اوحلاله ئې کړه.دهغې خکرې دسرسره داسلام دشروع پورې خانه کعبې باندې زواړندې وې بیااوچې شوې.یوځل حضرت ابوهریره‌رضي الله عنه او حضرت کعب‌رضي الله عنه خپلوکښې ناست ووخبرې ئې کولې.حضرت ابوهریره‌رضي الله عنه خوحدیثونه بیانول اوحضرت کعب‌رضي الله عنه دکتابونوقصې بیانولې.حضرت ابوهریره‌رضي الله عنه اوفرمائیل چه درسول الله ﷺ فرمان دې چه هرنبې دپاره یوه دعاپته ده اوماخپله دغه دعاپته ساتلې ده چه هغه به دقیامت په ورځ دامتیانودپاره وی.([2])

حضرت کعب‌رضي الله عنه اوفرمائیل تاسوپخپله دحضور ﷺ نه اوریدلی دی؟اوئې فرمائیل او.حضرت کعب‌رضي الله عنه خوشحاله شواوئې فرمائیل په حضور ﷺ باندې زماموریلارقربان.بیاحضرت کعب‌رضي الله عنه دحضرت ابراهیم‌علیه السلام قصه شروع کړه چه کله ابراهیم‌علیه السلام دخپل ځوی حضرت اسحاق‌علیه السلام دذبح کولودپاره تیارشونوشیطان اوونیل که مادې نن دهوکه نه کړونوبیاماته دده نه ټول عمردپاره خفه کیدل پکار دی. اول خودې حضرت ساره ته راغې اوتپوس ئې ترې اوکړوچه ابراهیم دستاځوې کوم خواه بوتلو؟موروړته جواب ورکړوخپل څه کارته ئې بوتلې دی.هغه ورته اوونیل نابلکه هغه ئې ذبحه کولودپاره بوتلو.مورته ئې ورته اوونیل چه هغه ذبح کوی ولې؟لعین ورته اوونیل چه هغه وائی چه دالله تعالی هم دغه حکم دې. جواب ورته ملاؤشونوبیاخوهم دغه ښه ده چه هغه زرته زره دالله تعالی حکم پوره کړي.دلته نه نامراده شواودې ماشوم ته راغې اوورته ئې اوونیل چه ستاپلارتاکوم خواه ته بوځی؟هغه ورته اوونیل

[1] احمد: ۲۹۷/۱، وسنده صحیح.

[2] صحیح بخاری کتاب الدعوات باب (( ادعونی استجب لکم)): ۶۳۰٤، صحیح مسلم: ۱۹۸.

دخپل څه کارډپاره.ورته ني اوونيل نابلکه دي تاذبح کولوډپاره بوخي.اوني فرمائيل ولي؟ورته ني جواب ورکړوخکه چه هغه ګنړی چه دادالله تعالی حکم دی.ورته نی اوونيل چه بياخوهغه ته په دي کارکښې تندی پکارده.دلته نه هم خفه دا لعين خليل الله ته ورغلو.هغوی ته ني اوونيل داماشوم کوم خواه بوخې؟جواب ورته ملاؤشودخپل څه کارډپاره.ملعون ورته اوونيل نابلکه ته دی ذبح کولوډپاره بوخي.هغوی ورته اوفرمائيل داولي؟ورته ني جواب ورکړوخکه چه ستاخيال دي چه دادالله تعالی حکم دي.ابراهيمﷺ اوفرمائيل چه په الله تعالی مې دې قسم وی زه به بيادا کارضرورکوم.اوس ابليس مايوس شو.

بل روايت کښې دی چه الله تعالی حضرت اسحاقﷺ ته اوفرمائيل چه ته زما نه دعااوغواړه،چه ته څه غواړې هغه به تاته ملاؤشي.حضرت اسحاقﷺ اوونيل چه بيازمادادعاده،چه چاشرك نه وی کړی هغه ته ضرورجنت ته بوخه.رسول اللهﷺ فرمائی چه الله تعالی ماته په دووخبروکښې اختياراکړي دي چه زه دي کښې يوه اختيارکړم.ياخوداچه زمانيم امتيان اوبخي ياداچه زه شفاعت اوکړم اوهغه الله تعالی قبول کړی.نوماشفاعت ته ترجيح په دې وجه باندې ورکړه چه هغه به عام وی.اويوه دعاوه چه مابه هغه کوله خودالله تعالی يونيك بنده هغه زمانه مخکښې اوکړه.واقعه داسې ده چه کله الله تعالی دحضرت اسحاقﷺ نه دذبح کولوسختی لرې کړه نوورته ني اوفرمائيل"اوغواړه چه څه غواړې درته به درکولی شي"توحضرت اسحاقﷺ اوفرمائيل والله دشيطان ددهوکه کولونه مخکښې به زه هغه اوغواړم.اې الله کوم کس چه په دې حالت کښې مړشوې وی چه هغه دستاسره شرك نه وی کړی نوهغه ته اوبخه.اوهغه ته جنت ورکړه. داحديث په ابن ابي حاتم کښې هم دی.خوسندئي غريب اومنکردی اوددې يوروايت کونکې عبدالرحمن بن زيدبن اسلمؒ ضعيف دی اوماته ويره ده چه داالفاظ"چه کله الله تعالی اسحاقﷺ ته" نه داخره پورې دروايت کونکی خپل نه وی.اوداهغه په حديث کښې داخل کړی وی.

ذبيح الله خوحضرت اسماعيلﷺ دي دذبح کولوځائي په منی کښې دی اوداپه مکه دی اوحضرت اسماعيلﷺ په مکه کښې ووحضرت اسحاقﷺ نه،هغه خوپه کنعان ښارکښې وو،کوم چه په شام کښې دی.کله چه ابراهيمﷺ خپل خوږخوې ذبح کولوډپاره واچولونودالله تعالی دطرف نه اوازراغلوچه بس ابراهيم تاخپل خوب پوره کړو.

سدی نه روايت دی چه کله خليل دذبيح الله په مرې باندې چاره راښکله نوخټ ني داوسپنې شواوکټ نه شواوداااوازراغلې چه مونږنيکوکاروته دغه شان بدله ورکوو،يعنی دسختيانوني بچ کوو.څنګه چه الله تعالی فرمائيلی دي."دالله تعالی نه ويريدونکی خلقوډپاره الله تعالی دخلاصی لار پيدا کړی، او هغوی ته داسې رزق ورکوی چه دهغوی په خيال کښې هم نه وی.په الله تعالی باندې بهروسه کولوډپاره الله تعالی کافی دي.الله تعالی خپل کارونه پوره کوی اودهرکارډپاره هغه يواندازمقررکړی دي.داايت په دې خبره باندې دليل دی چه کارکيدونه مخکښې حکم منسوخ شوې وو.

**د کار کيدو په وخت کښې حکم منسوخ شو** ::دلته معتزله دانه منی،داستدلال وجه ښکاره ده څکه چه خليل الله ته دخپل خوی دذبح کولوحکم ملاؤشوې وو،اوذبح کولونه مخکښې دفدې سره منسوخ شو.ددې يوازمينت وو،کهلاؤامتحان وو،چه يوطرف نه حکم اوشواوبل طرف ته ورته تياری اوشوه.په دې وجه باندې دجناب خليل الله په تعريف کښې قران مجيدکښې دی."ابراهيم ډيرو فاداروو، د لوې قربانۍ سره دهغه فديه مونږورکړه."سپين رنګ،غټې سترګې اوغټوخکروالااويه ښه خوراك باندې غټ شوې ګډمونږدهغه په فديه کښې ورکړوچه هغه په ثبيرکښې دبيرې ونې پورې ترلې شوې وواوهغه په جنت کښې څلويښت کاله وو.منی کښې چه دثبيرسره کوم غردې په هغې باندې دا څناور حلال کړی شوې دې.دې په څڅوباندې دابره نه راغلې وو.هم داهغه ګډدې کوم چه هابيل دالله په لارکښې قربان کړې

وو،دهغې ورځ لره شان سره وه دهغه نوم جريروو.بعضې وائي چه مقام ابراهيم کښې هغه حلال کړې شوې وواوځوک وائي چه په منى کښې منحرباندې.

دابن عباس رضي الله عنه فتوى::يوکس خپل ځان دالله تعالى په لاره کښې دذبح کولومنت منلې وو.نوحضرت ابن عباس رضي الله عنه هغه دسلواوښانودحلالوفتوى ورکړه خوبيائې اوفرمائيل که ماهغه ته ديوګډحلالوونيلى وو نو هم کافي وو.ځکه چه په کتاب کښې دکتاب الله فديه يوګډسره ورکړې شوې ده.دزياتوخلقوهم دغه قول دې.بعض وائي چه داغرونوچيلې وو.ځوک وائي چه اوسې وه.مسنداحمدکښې چه ابن عباس رضي الله عنه حضور ﷺ راوغښتلواوورته ئې اوفرمائيل چه مابيت الله ته داخليدووخت کښې دګډخکرې ليدلې وې اوماته يادنه ووچه تاته مې دهغې دپټولوحکم کړې وې.لارشه اوهغه پټې کړه.په بيت الله کښې داسې څيزنه دې پکارچه هغه دمونځ کونکوخيال بل طرف ته بوځي.(١)حضرت سفيان رضي الله عنه فرمائي ددې ګډخکرې هم په بيت الله کښې وې.تردې چه يوځل په بيت الله کښې اوراولګيدو،اوهغه پکښې اوسوزيدې .داواقعه هم ددې خبرې ګواهي ورکوي چه ذبيح الله هم حضرت اسماعيل عليه السلام وو په دغه وجه باندې دهغه اولادقريش داخکرې محفوظ ساتلې وې،تردې چه الله تعالى حضرت محمد ﷺ پيداکړو.والله اعلم.

دهغه خبرونيان په کومو کښې چه ذبيح الله اسحاق عليه السلام دې.ابوميسره رحمه الله فرمائي چه حضرت يوسف عليه السلام دمصربادشاه ته اوفرمائيل.چه ته زماسره خوراك کول غواړې؟زه يوسف بن يعقوب نبي الله بن اسحاق ذبيح الله بن ابراهيم خليل الله يم.دعبيدبن عميربه نقل دی حضرت موسی عليه السلام الله تعالى ته عرض اوکړوچه اې الله!چه څه خبره ده چه خلق وائي په چه دابراهيم عليه السلام،اسحاق عليه السلام اويعقوب عليه السلام په خدې مو قسم. نوجواب ورته ملاؤشوچه ابراهيم خويه هريوڅيزباندې ماته ترجيح راکړه اواسحاق خپل ځان زماپه درباركښې ذبح کولو له تيارکړې وو،نوبيانورڅه ورته څه مشکل وو؟اويعقوب باندې چه ماڅومره تکليفونه اچول دهغه برداشت به هم هغه هومره زياتيدو.

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په مخکښې يوکس په فخرسره دخپل پلارنيکه نوم واخستلو.نوهغه ورته اوفرمائيل دفخرقابل نيکه خودحضرت يوسف عليه السلام وو.چه هغه ديعقوب بن اسحاق عليه السلام ذبيح الله بن ابراهيم خليل الله عليه السلام وو.وعکرمه رحمه الله،ابن عباس رضي الله عنه،اوپخپله عباس رضي الله عنه،علي رضي الله عنه،سعيدبن جبير، مجاهد رحمه الله، شعبي رحمه الله،عبيدبن عمير رحمه الله،ابوميسره رحمه الله،زيدبن اسلم رحمه الله،عبدالله ابن شفيق، زهري رحمه الله، قاسم بن ابوبرزه،مکحول رحمه الله،عثمان بن ابی حاضر رحمه الله، سدی رحمه الله، حسن رحمه الله، قتاده رحمه الله، ابوالهذيل رحمه الله،ابن سابط رحمه الله،کعب احبار رحمه الله،ددې ټولوهم دغه قول دې اوابن جريرهم دغه وائي چه ذبيح الله حضرت اسحاق عليه السلام وو.صحيح علم خوالله ته دې خويه ظاهره داسې معلوميږي چه ددې ټولوبزرګ احباردې.دې په فاروقي خلافت کښې مسلمان شوې وو،اوکله کله به ئې حضرت عمر رضي الله عنه ته د پخوانوکتابونوقصې اورولې.خلقودا رخصت اوګڼرلواوبيابه ئې ترې هره خبره نقل کوله،اوبه دې کښې د صحيح اوغلط خبرې فرق ختم شو.ربنتياخوداده چه دې امت ته دزوړيوکتاب ضرورت هم نشته.بغوي رحمه الله دڅه نوروصحابه رضوان الله اجمعين اوتابعين رحمة الله عليهم نومونه خودلې دی.کوموچه وئيلی دی چه ذبيح الله حضرت اسحاق عليه السلام دې.په يومرفوع حديث کښې دی که چرته هغه حديث صحيح وونودجهګړې فيصله وه. خوهغه حديث صحيح نه دې.په دې کښې دوه روايت کونکی ضعيف دی.نوپه يوسندباندې داخبره دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت ده اوداديره صحيح ده.والله اعلم.

هغه خبرې چې د اسماعيل عليه السلام ذبيح الله کيدلو دليل دې::وس هغه خبرې اولولئ دکومونه چه معلوميږی چه ذبيح الله حضرت اسماعيل عليه السلام وو.اوهم دا ټيك اوصحيح ده.ابن عباس رضي الله عنه هم دغه فرمائي چه يهوديان

(١) ابوداود کتاب المناسک باب فی دخول الكعبة: ٢٠٣٠. وهوحسن.

دحضرت اسحاقؑ نوم غلط اخلي.
دخليفة المسلمين حضرت عمرابن العزيزؒ په مخکښې چه کله محمدبن کعب قرظيؒ دا اوفرمائيل اوورسره ئې ددې دليل هم ورکړوچه دذبح کولوذکرنه پس په قران مجيدکښې خليل الله ته د اسحاقؑ دپيدائش زيرې ورکړې شوې دې اوورسره هم دابيان دې چه دهغوی کره به هلك کيږی چه نوم به ئې يعقوب وی.اوچه کله دهغه کره دهلك کيدوزيرې ورکړې شو،بيادې نه پس چه دهغه لاهلك پيدا کيدونه مخکښې دهغه دذبح کولوحکم څنګه اوشو؟نوحضرت عمر بن عبدالعزيز اوفرمائيل چه ډيرواضح دليل دې زماذهن دلته نه وورسيدلې يعني ماهم منل چه ذبيح الله حضرت اسماعيلؑ وو.
بيا شاه اسلام دشام يويهودی عالم نه تپوس اوکړوکوم چه مسلمان شوې وو،چه تاته ددې باره کښې څه علم دې؟هغه ورته ونيل چه اميرالمومنين ربښتياخبره داده چه دچادذبح کولوحکم شوې وو،هغه حضرت اسماعيلؑ وو،خوچونکه عربيان دهغه اولادکښې دی نودابزرګی هغوی ته ملاويږی په دې وجه باندې يهوديانوهغه بدل کړو.اودحضرت اسحاقؑ نوم اخلي.ربښتياعلم الله سره دې خوزمونږايمان دې چه حضرت اسحاقؑ اوحضرت اسماعيلؑ دواړه پاك اوطيب اودالله تعالى فرمانبرداره وو.په کتاب الزهدکښې دی چه دحضرت امام احمدبن حنبلؒ خوې حضرت عبدالله دخپل پلارنه کله دمسئلې تپوس اوکړونوهغه. ورته جواب ورکړوچه ذبح کيدونکې حضرت اسماعيلؑ وو.دحضرت علي، حضرت ابن عمر،ابوالطفيل،سعيدبن مسيب،سعيدبن جبير، حسن، مجاهد،شعبي،محمدبن کعب،ابوهريره،ابوجعفرمحمدبن علي،ابوصالح ؓ نه هم دغه روايت دی.
امام بغویؒ دنوروصحابه کرامو ؓ اوتابعينؒ نومونه اخستلي دی.يوغريب حديث هم ددې په تائيدکښې روايت شوې دې،په دې کښې دی چه په شام کښې داميرمعاويه مخکښې دابيان راغې چه ذبيح الله څوك دې؟نوهغه اوفرمائيل چه ښه ده چه دامعامله زماپه شان باخبرکس مخې ته راغله. واورئ!مونږدحضورﷺ سره ووچه يوکس حضورﷺ ته راغې اواوئې وئيل،چه اې ددوالله تعالى په لارکښې د دوؤذبح کړې شوؤ والا د نسل نه رسوله!ماته هم دغنيمت دمال نه څه راکړه.په دې باندې حضورﷺ په خنداشو،يوذبيح الله خودحضورﷺ پلارحضرت عبدالله وودويم حضرت اسماعيلؑ وودچادنسل چه حضورﷺ دې.دعبدالله دذبح کيدوواقعه داسې ده چه دحضورﷺ نيکه عبدالمطلب چه کله دزمزم کوې اوکنستلونوداخبره ئې اومنله که داکارپه اسانتياسره اوشونودالله په لارکښې به خپل يوخوې ذبح کړم.کله چه کارپوره شواوقرعه اندازی اوکړه چه کوم خوې دالله په نوم باندې ذبح کړم؟نودحضورﷺ دپلارعبدالله نوم راوتلو.دهغه دمورطرف نه نيکه ورته اوونيل چه دده په ځائې باندې سل اوښان حلال کړئ،نوهغه اوښان حلال کړې شول(١).اودحضرت اسماعيلؑ واقعه خومشهورده.ابن جريرکښې دا روايت موجوددې اومغازی امويه کښې هم شته.

**دابن جرير دليل چې ذبيح الله اسحاقؑ دې:** ابن جريرخودحضرت اسحاقؑ دذبيح الله دادليل پيش کوی چه دکوم حليم ماشوم دزيرې ذکردې دهغه نه مراداسحاقؑ دې.په قران کښې بل ځائې دی.﴿ وَبَشَّرُوهُ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ﴾ اودحضرت يعقوب دزيری داجواب ورکړوچه هغه دهغه سره دګرځيدوعمرته رسيدلې وو،اوداهم ممکن ده چه ديعقوب سره بل څه اولادهم وو.اوپه کعبة الله کښې دخکردموجودګئ باره کښې فرمانی چه داهم ممکنه ده چه دبلاد او کنعان نه ئې دادلته راوړې وی.او د څه خلقونه داسحاقؑ دنوم صراحت هم بيان شوې دې.خوداټولې خبرې دحقيقت نه لرې دی.اودحضرت اسماعيلؑ په ذبيح الله باندې دمحمدکعب قرظيؒ خبره ډيره واضحه اومضبوط ده والله اعلم.رومبې دذبيح الله حضرت اسماعيلؑ دپيدائش زيرې ورکړې شو.دلته بيادهغه درورحضرت

---

(١) حاكم :٢/٥٥٤.

اسحاقؑ زيري ورکړې شو.سوره هود اوسوره حجر کښې هم ددې ذکرتيرشوې دې."نبياء"، حال مقدره دې يعني هغه به صالح نبي وي.

دابن عباس ؓ دليل: ابن عباسؓ فرمائي چه ذبيح حضرت اسحاقؑ وو،اودلته نبوت دحضرت اسحاقؑ زيري دې، څنګه چه حضرت موسیؑ په باره کښې فرمان دې چه مونږهغه په خپل رحمت سره دهغه رورهارون نبي جوړکړو.حالانکه هارون دموسیؑ نه مشروو.نودلته هم دهغه دنبوت زيرې دې.نودازيرې په دې وجه باندې ورکړې شوې دې چه هغه دذبح کولوپه امتحان کښې صبرکونکې وو.داهم روايت شوی دی چه دازيرې دوه خله ورکړې شوې دې،دپيدائش نه لږمخکښې اودنبوت نه لږمخکښې.دحضرت قتاده ؒ نه هم دارروايت دی.په هغه باندې اواسحاق باندې دې برکتونه وی.دهغه په اولادکښې هرقسمه خلق دی،نيك بخت هم اوبدبخت هم.څنګه چه حضرت نوحؑ فرمائيلي دی چه اې نوح!چه زمونږ د سلام اوبرکت په وجه باندې ته اوستاسره خلق اوداسې خلق هم شته چه هغوی ته مونږفائدې ورسوو، بيابه هغوی ته زمونږدطرف نه دردناك عذاب وي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۱۴﴾ | | وَنَجَّيْنٰهُمَا | وَقَوْمَهُمَا |
| اواحسان اوکړو مونږه \| په موسي او هارون باندې | | او نجات ورکړو دواړو له \| او قوم ددواړو له \| | |
| او مونږ په موسیؑ او هارونؑ باندې هم احسان کړې وو \| او دوئ دواړه مو سره دخپله قومه | | | |
| مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۱۵﴾ | وَنَصَرْنٰهُمْ | فَكَانُوْا | هُمُ |
| دمصيبت (غم) لوئ نه \| | او امداد اوکړو مونږه دهغوئ \| | پس شو هغوئ \| | هم هغوئ \| |
| دلوئي مصيبت نه خلاص کړل \| او مونږ ددوئ امداد اوکړو \| نو دوئ (په فرعونيانو) | | | |
| الْغٰلِبِيْنَ ﴿۱۱۶﴾ | وَاٰتَيْنٰهُمَا | الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ | وَهَدَيْنٰهُمَا |
| غالب \| | او ورکړ مونږ دواړو له \| | کتاب \| روښانه \| | اولاره اوښودله مونږ دواړو ته |
| غالب شول\| ............ او مونږ دې دواړو ته روښانه کتاب ورکړو \|اومونږ دې دواړو ته نيغه لار | | | |
| الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۱۸﴾ | وَتَرَكْنَا | عَلَيْهِمَا | فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ |
| لاره نيغه \| | او پريښودو مونږه صفت \| | په دواړو باندې\| | په روستنو نسلونو کښې \| |
| اوخودله \| او مونږ دې دواړو دپاره په روستو راتلونکو خلقو کښې دا(ذکرخير) باقي اوساتلو | | | |
| سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۲۰﴾ | اِنَّا كَذٰلِكَ | نَجْزِي | الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۲۱﴾ |
| سلام دې \| په موسي او هارون باندې \| | بيشکه مونږه \| هم درانګې \| | بدله ورکوؤ \| | نيکانو خلقو له |
| چې په موسیؑ اوهارونؑ دې سلام وی\| بيشکه مونږ دغه شان نيکانو بندګانو ته بدله ورکوؤ | | | |
| اِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۲﴾ ط | | | |
| بيشکه هغوئ دواړه \| دبندګانو زمونږ \| مومنانو نه وو \| | | | |
| دوئ دواړه زمونږ د مومنانو بندګانو څخه وو\| | | | |

**قوله تعالی:: وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوسٰى وَهٰرُونَ ﴿۱۱٤﴾**

**دحضرت موسی علیه السلام اوحضرت هارون علیه السلام ذکر:** الله تعالی حضرت موسی علیه السلام اوهارون علیه السلام ته خپل نعمتونه بیانوی چه هغوی ته ئې نبوت ورکړو.اوهغوی ته ئې دقوم سره دفرعون په شان طاقتوردښمن نه خلاصې ورکړو.چاچه هغوی ډیرزیات ذلیل اوخوارکړي وو.دهغوی بچي ئې قتل کړي وواوجینکۍ ئې پریخودې وې،اوهغوی نه بې ذلیل خدمتونه اخستل اوبې حیثیته کړي ئې وو.داسې بدترین دښمن دهغوی په مخکښې هلاك کړو.هغوی ئې په هغه باندې غالب کړل.هغوی دخپلوزمکواومالونومالکان شول.بیانې حضرت موسی علیه السلام ته واضح روښانه اوکتاب ورکړوچه هغه په حق اوباطل کښې فرق کونکې اونوراوهدایت والاوو.اودهغوی نه پس خلقوکښې ئې هم دهغوی ذکراوثناء صفت اوساتلو.چه هریوه ژبه په هغوی باندې سلام وائي.مونږنیك خلقوته هم دغه شان بدلې ورکوو.هغوی زمونږمومن بندیان وو.

وَاِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۲۳﴾

| او بیشکه الیاس علیه السلام (هم) | درسولانو نه وو

| اوالیاس علیه السلام هم په پیغمبرانو کښې شامل دې

اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۱۲٤﴾ اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَّتَذَرُوْنَ

کله چې اووئیل هغه | قوم خپل ته | ایا نهٔ یریږئ تاسو | آیا تاسو رابلئ | بعل بت | او پریږدئ تاسو

څه وخت چې هغه خپل قوم ته اووئیل | چې آیا تاسو دالله ﷻ نه نه ویریږئ | آیا تاسو دبعل عبادت کوئ

اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ ﴿۱۲۵﴾ اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ

بهتره پیدا کونکې (الله) | (هغه) الله | چې رب ستاسو دې | او رب دپلارانو ستاسو |

اوښکلې خالق مو پریخودې دې | یعنی الله ﷻ چې ستاسو او ستاسو د پخوانو پلار نیکونو رب هم

الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۲٦﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

رومبنو دې | پس هغوئ دروغ اوګڼړو هغه | پس بیشکه هغوئ | خامخا به حاضر کړې کیږي سزا ته

دې | ..........هغوئ الیاس علیه السلام دروغ اوګڼړلو | نو دا ټول به عذاب ته حاضرولې شي

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ

بغیر | دبندګانو دالله نه | هغه چې خالص کړې شوې وو | او پریښودو مونږه (صفت) | په هغه باندې |

سوا دالله تعالی د خاص بندګانو نه |............ اومونږ د هغه په باره کښې راتلونکو خلقو ته دا خبره

فِى الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۲۹﴾ سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلْ يَاسِيْنَ ﴿۱۳۰﴾ اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى

په روستو نسلونو کښې | سلام دې | په الیاس باندې | بیشکه مونږه | درانګې | بدله ورکوو مونږه |

پریخوده | .........چې په الیاس علیه السلام دې سلام وی | ..........بیشکه مونږ هم دغه شان نیکانو

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳۱﴾ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۲﴾

نیکانو خلقو له | بیشکه وو هغه | دبندګانو زمونږ | مومنانو نه |

بندګانو ته بدله ورکوو | بیشکه زمونږ د مومنانو بندګانو څخه وو |

**قوله تعالی:: وَاِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۲۳﴾**

دحضرت الياس ذكر: بعضې وائي چه دحضرت ادريس ﷺ نوم الياس وو(١).وهب ﷺ وائي چه دهغه سلسله نسب څه داسې ده.الياس بن نسو بن فخاضي ابن عيزاربن هارون بن عمران ﷺ.(٢)حزقيل ﷺ نه پس دوى بني اسرائيلوته نبى اوليږلې شو.هغه خلق دبعل نومې بت سجده كونكى وو.الياس ﷺ ورته داسلام دعوت وركړو.دهغوى بادشاه دعوت قبول كړوخوبيامرتدشواوخلقو ئې هم سركشي كوله ، او ايمان راوړلونه ئې انكاراوكړو.الياس ﷺ هغوى دپاره بددعااوكړه.درې كالوپورې باران اونه شو .دوى ډيرتنگ شول اوقسمونه ئې خوړل شروع كړل چه تاسودعااوكړئ دباران كيدلوسره به مونږايمان راوړو.نوالياس ﷺ په دعاباندې وريځونه باران اوشو.خوداكافران دخپلې وعدې نه واوختل،اوخپل كفرئې بياشروع كړو.الياس ﷺ چه كله داحالت اوليدونوالله تعالى ته ئې دعااوكړه چه دوى خپل طرف ته بوځه.دهغوى سره حضرت يسع بن اخطوب ﷺ وو،دحضرت الياس ﷺ ددعانه پس هغه حكم ملاؤشوچه يوځائې ته لاړشه اوهلته چه ذرته كومه سورلي ملاؤشوه په هغې باندې سورشه.هلته هغوى ته يود اووراس ملاؤشوچه په هغې باندې هغه سورشو. الله تعالى هغه هم نوراني كړو او پخپلو ورخو باندې الوتل شروع كړل اويوه انساني فرښته دزمكې اواسمان شوه.ددې دصحت علم الله تعالى ته دې. او دا خبره داهل كتاب دروايت مطابق حضرت الياس ﷺ خپل قوم ته فرمانيلې وه چه تاسودالله تعالى نه ويريږئ؟

چه دهغه نه سوادنوروعبادت كوئ!اهل يمن اوقبيله ازدشنوه رب ته به بعل وئيلو(٣).دبعل نومې كوم بت چه به هغوى عبادت كولوهغه يوه ښځه وه.دهغوى دښارنوم هم "بعلبك"وو.(٤)

نودالله تعالى نبى حضرت الياس ﷺ فرمائي چه تعجب دې په تاسوباندې چه تاسوالله تعالى چه هغه دټول كائنات مالك دې اوبهترين خالق دې په ځائې يوبت ته عبادت كوئ.الله تعالى د ستاسو ټولو او ستاسونه مخكښې دستاسوډپلارنيكه دعبادت لائق دې.دهغه نه علاوه څوك هم دهيڅ قسمه عبادت لائق نشته.

خودې خلقودالله تعالى دپاك نبى صفااوخيروالانصيحت اونه منلونوالله تعالى په دوى باندې عذاب نازل كړو.چه دقيامت په ورځ باندې به دوى نه سخت تپوس كيږي اودوى ته به سخت عذاب وركولې كيږي.اوبه دوى كښې چه څوك په توحيدباندې ووهغه بچ شول.

مونږدحضرت الياس ثناء اوښه ذكربه نوروخلقوكښې هم پريخودوچه دهرمسلم ژبه په هغه باندې سلام اودرود وائي.په لفظ الياس كښې دويم لغت الياسين دې.څنگه چه اسماعيل اواسماعين په بنو اسد كښې دغه شان لغت دې.ديوتميمي په شعركښې هم دالغت دغه شان استعمال شوې دې.

ميكائيل ته ميكال اوميكائن هم وئيلې كيږي.ابراهيم ته ابراهام،اسرائيل ته اسرئين،طورسيناته طور سينين .يعنى دالغت په عربئ كښې مشهوردې.

دحضرت ابن مسعود ﷺ په قرات كښې ﴿سَلٰمٌ عَلٰى اِلْ يَاسِيْنَ﴾ دې.بعضې وائي چه ددې نه مرادحضرت محمد ﷺ دې.مونږدغه شان نيك خلقوته نيكه بدله وركوو.يقيناهغه زمونږبه نيك بندگانوكښې وو.ددې جملې تفسيرمخكښې تيرشوې دې.والله اعلم.

١) الطبرى : ٩٥/٢١.
٢) الطبرى : ٩٧/٢١.
٣) الطبرى : ٩٦/٢١.
٤) الطبرى : ٩٧/٢١.

وَاِنَّ لُوْطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ اِذْ نَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗٓ اَجْمَعِيْنَ ۝

او بیشکه لوط علیه السلام | درسولانو نه وو | کله چې | بچ کړو مونږ هغه | او اهل دهغه ټول

او بیشکه لوط ﷺ هم د پیغمبرانو څنی وو| څه وخت چې مونږ هغه او دهغه متعلقین ټول بچ کړل

اِلَّا عَجُوْزًا فِي الْغٰبِرِيْنَ ۝ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْاٰخَرِيْنَ ۝

بغیر د یوې بوډۍ نه | چې په روستو پاتې کیدونکو کښې وه | بیا هلاك کړل مونږه | باقي نور (ټول)

خو بس یوه بوډۍ (هلاکه شوه) | چې په روستو پاتې کیدونکو کښې وه | بیا مونږ نور ټول خلق تباه کړل

وَاِنَّكُمْ لَتَمُرُّوْنَ عَلَيْهِمْ مُّصْبِحِيْنَ ۝ وَبِالَّيْلِ

او بیشکه تاسو | خامخا تیریږئ | په هغوئ باندې | په صبا کښې | او په شپه کښې |

او تاسو خلق صبا بیګاه دهغوئ په علاقو تیریږئ | نو ایا تاسو نه پوهیږئ

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ وَاِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ۝ اِذْ

ایا پس نه چلوئ عقل تاسو | او بیشکه یونس علیه السلام | درسولانو نه وو | کله چې |

(چه دهغوی د تباهئ نه عبرت واخلئ) | او یونس ﷺ هم د پیغمبرانو څنی وو | څه وخت

اَبَقَ اِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ۝ فَسَاهَمَ فَكَانَ

هغه اوتښتیدو | کشتئ | ډکې | ته | نو په خسنړی کښې شریك شو | پس شو |

چې اوتښتیدو (اویوې) ډکې بیړۍ ته اورسیدو | .............نو په خسنړی کښې شریک شو

مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ ۝ فَالْتَقَمَهُ الْحُوْتُ وَهُوَ مُلِيْمٌ ۝

دبیلات کونکونه په قرعه اندازئ کښې | پس تېر کړو هغه لره | مهی | او هغه ملامته وو |

نو د بیلات کونکو څنی شو | بیا دې یو مهی لوا ږ تیر کړو | (اوحال دا وو) چې دې (سخت) پښیمانه وو

فَلَوْلَآ اَنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ ۝ لَلَبِثَ

پس که چرې نه وې دا خبره | چې وو هغه | دتسبیح ویونکونه | نو خامخا به ئې وخت تیرولې |

بیا که چرې دې دالله ﷻ تسبیح کونکې نه وو | نو ددغه مهی په خیټه .......................

فِيْ بَطْنِهٖٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ۝ فَنَبَذْنٰهُ

په خیټه دمهی کښې | دهغه ورځې پورې چې راپاسولې کیږی خلق | پس اوغورزوو مونږ هغه

کښې به تر قیامته پروت وو | نو مونږ دې په یو هوار میدان کښې واچولو | چې ډیر

بِالْعَرَآءِ وَهُوَ سَقِيْمٌ ۝ وَاَنْۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً

په ډاګه | او هغه ناجوړه (کمزورې) وو | او راز اوخیژوله مونږه | په هغه باندې | ونه |

کمزورې شوې وو | اومونږ په ده باندې یوه زیلئ داره ونه رازرغونه کړه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِّنْ يَّقْطِيْنٍ﴿۱۴۶﴾ | وَاَرْسَلْنٰهُ | اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ | اَوْ يَزِيْدُوْنَ﴿۱۴۷﴾ |
| زيلو والا (كدو) | او اوليږو مونږه هغه | يولاك خلقو ته | يا زياتوته ددې نه |
| او مونږ دې يو لاكهة يا ددې نه زياتو خلقو طرفته ليږلې وو | | | |
| فَاٰمَنُوْا | فَمَتَّعْنٰهُمْ | اِلٰى حِيْنٍ﴿۱۴۸﴾ | |
| پس هغوئ ايمان راوړو | پس نفع وركړه مونږ هغوئ له | دخاص وخته پورې | |
| نو دوئ ايمان راوړو نو مونږ دوئ ته يو مقرروخته پورې (د دنياوي ژوند) فائده وركړه | | | |

**قوله تعالیٰ: وَاِنَّ لُوْطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴿۱۳۳﴾**

**دحضرت لوط ﷺ ذکر:** الله تعالی دبنده اودهغه رسول حضرت لوط ﷺ ذکردې چه هغه هم خپل قوم نه وومنلی.چه په هغوی باندې دالله تعالی عذاب راغلو.اوالله تعالی خپل خوږنبی حضرت لوط ﷺ ته سره دخپل کوروالوحفاظت ورکړو.خودهغوی ښځه غرقه شوه،دقوم سره هلاك شوه اوټول قوم ئې هم تباه شو.قسم قسم عذابونه په هغوی باندې راغلل اوکوم ځائې کښې چه به هغوی اوسيدل هغه ځائې کښې يوبدبوداره تالاب جوړشو.چه دهغې اوبه سخا رنګ والاوې.اوهغه دتګ راتګ په لارکښې وو،چې تاسو شپه ورځ په هغه لارباندې تلل راتلل کوئی اوداخوفناك اوخراب ځائې تاسو سحرمابنام ليدلو.نودې ليدلوسره هم تاسو ته عبرت نه حاصليږي.اوتاسوسوچ نه کوئ؟چه دوی څنګه بربادکړې شول؟چرته داسې نه وی چه داعذاب په تاسوباندې هم راشی.

**ديونس ﷺ ذکر:** دحضرت يونس ﷺ قصه په سوره يونس کښې ذکرشوې ده.دبخاری اومسلم په حديث کښې دی چه يوانسان ته هم داجائزنه دی چه هغه اووائی چه زه ديونس بن متی نه افضل يم.دانوم کيدښې چه دهغه دپلاروی (¹)يادا هم ممکن ده چه دهغه دموروی.دوی په منده باندې دمال اودولت نه ډکې کشتې کښې سورشو هغه په غرقيدو شوه.هلته قرعه اندازی اوشوه،اودوی مغلوب شول.دکشتې حرکت کولوسره د ځلوروطرفونه طوفان راغلو.تردې چه ټولوته دخپل مرګ اودکشتې د ډوبيدو يقين اوشو. ټولوبه خپلوکښې اووئيل چه قرعه اندازی اوکړئ اوچه دچانوم راوتلوهغه سمندرته اوغورځوئ چه ټول بچ شواوکشتې د دې طوفان نه اوځی.درې ځله قرعه اندازی اوشوله اودرې واړه ځله دالله تعالی دپيغمبرحضرت يونس ﷺ نوم راوختلو.دکشتې والاحضرت يونس ﷺ سمندرکښې غورځول نه غوښتل خو باربار د حضرت يونس ﷺ نوم راختلو.اوبيايونس ﷺ پخپله باندې کپړې ويستلې اودهغه خلقودمنع کولونه پس هم ئې سمندرته ورټوپ کړل.دغه وخت دبحراخضريوغټ کب ته دالله تعالی حکم اوشوچه په دريابونوکښې لاړشی اويونس ﷺ ژوندې تيرکړی،اونه دې دهغه بدن زخمی شی اونه دې څه هډوکې مات شی.نودغه کب دالله تعالی نبی ژوندې تيرکړواوپه سمندرکښې ئې حرکت شروع کړو.

**قوله تعالیٰ: وَاِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ﴿۱۳۹﴾**

**د يونس ﷺ د مهی په ګيډه کښې سجده او دعا:** کله چه يونس ﷺ پوره دکب خيټې ته لاړونودهغه خيال ووچه زه مرشوې يم.خوچه کله ئې خپولاسونوته حرکت ورکړوهغه خوزيدل.نودژوندیقين ورته اوشواوودريدواوهلته ئې مونځ شروع کړواوالله تعالی ته ئې عرض اوکړواې پروردګاراما دستادپاره په داسې ځائې کښې جمات جوړکړوکوم ځائې ته به چه څوك نه وی رسيدلې.درې ورځې يااووه ورځې ياڅلويښت ورځې يايوه ورځ يادېوې ورځې نه هم څه کم يايوه شپه دکب په خيټه کښې وو.که دې

---

¹) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالی (وان يونس لمن المرسلين) : ۳۴۱۶، صحيح مسلم :۲۳۸۶

زمونږ صفت بیانولووالانه وو،یعني ښنګه چه دامن اوفراخئ په زمانه کښې ووکه هغه وخت دهغه نیکیانې نه وي.یوحدیث هم دغه شان دې چه هغه به زربیان کړې شي.انشاء الله.

دابن عباس په حدیث کښې راغلي دي چه دارام اوراحت په وخت کښې دالله تعالی عبادت کوئ نوهغه به سختئ په وخت کښې دستامدداوکړي.داهم ونیلي شوي دي چه که دې دمونځ پابندنه وې([1]).اودادهم ونیلي شوي دي که ده دکب په خیټه کښې مونځ نه وې کړې اوداهم ونیلي شوي دي که دهٔ ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ سره زمونږتسبیح نه وې کړې.([2])نوپه قران مجید کښې ارشاددې چه هغه په تیاروکښې هم دغه کلمې اوونیلې اومونږدهغه دعاقبوله کړه اوهغه ته مودغم نه خلاصي ورکړو. او هم دغه شان مونږمومنانوته خلاصي ورکوو.

**د یونس ﷺ ددعا متعلق حدیث:** دابن ابی حاتم په یوحدیث کښې دي چه حضرت یونس ﷺ چه کله دکب په خیټه کښې داکلمې اوونیلې نودادعادالله تعالی عرش سره اوختله راوختله نوفرښتواوونیل یاالله! دا اوازخودډیرلرې دې.خودااواززمونږغوږونه پیژني.الله تعالی اوفرمائیل اوس موهم اوپیژند دا د چا اوازدې؟هغوی اوونیل نه مودې پیژندلې.اونې فرمائیل زمادبنده یونس اوازدې.فرښتواوونیل دهغه یونس چه دهغه نیك عملونه اوقبول شوې دعاګانې هروخت په اسمان کښې وي؟اې الله ته ضرورپه ده باندې رحم اوکړه.دده دعاقبول کړه هغه خوبه په اسانتیاکښې هم دستانوم اخستلې دې.هغه ته دمصیبت نه خلاصي ورکړه.الله تعالی ارشاداوفرمائیلو.اوزه به ده ته خلاصي ورکوم.نوکب ته حکم اوشوچه میدان کښې حضرت یونس ﷺ بهرته اوغورځوه.اوهغه اوغورځو اوهم هغلته الله تعالی په هغه باندې دکمزورئ اوبیمارئ په وجه باندې دسورې دپاره دکدوونه راویستله اویوه ښنګلی چیلې نې پرې مقررکړه([3]) چه هغه به سحر ماښام دیونس ﷺ خواه ته راتله او هغوی به نې پئ څښل.

دابوهریره رضی الله عنه په روایت باندې دا خبرې دسوره انبیاء په تفسیر کښې مرفوع حدیث سره تیرې شوې دي.مونږهغه په داسې زمکه کښې واچوکوم ځائې چه شین والي،اوواخه څه هم نه وو.ددجله یادیمن په زمکه باندې هغوی غورځولې شوي وو.یونس ﷺ کښې هغه وخت هیڅ څه طاقت نه ووښنګه چه د مرغو بچي وي،یاماشوم چه کوم وخت پیداشي.یعنی صرف نې ساه اخستلې شوه اودخوځیدونه وو ، **یقطین**: دکدوبوټي ته هم ونیلې کیږي ([4])اوهرهغه ونې ته ونیلې کیږي چه دکومې تنه وي.اودهغه ونې ته هم دکومې عمرچه دکال نه زیات نه وي.

**دکدو د ونې فائدې:** په کدوکښې ډیرې فائدې دي،داډیرزرکیږي اوغټیږي.ددې دپانړوسورې زیات اومیوه نې خانسته وي ځکه چه هغه غټې غټې وي اودې ته ماشي نه راځي اوداډخوراك په کارراځي، او دپوستکي اوګودې سره خورلې کیږي.صحیح حدیث کښې دي چه د حضور ﷺ کدوډیرزیات خوښ وو،اودلوخي نه به نې صفاکولو.([5])اوبیاهغه دیولاکه بلکه دزیات خلقو طرف ته پیغمبرجوړکړې شو.ابن عباس رضی الله عنه فرمائي چه دټولونه مخکښې هغه پیغمبرنه وو.حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي،چه دکب خیټې ته تلونه مخکښې هغه رسول جوړکړې شوې وو.په دواړوقولوکښې تضادداسې ختمیدیشي چه مخکښې هم هغوی ته دې پیغمبرلیږلې شوې وواودکب خیټې ته تلونه پس هم په دویم ځل باندې هغوی ته اولیږلې شو. او علامه بغوی روایت کوي چې دمخکښې قوم نه علاوه بل قوم ته اولیږلې شو ا و

---

[1] احمد:۳۰۷/۱ وسنده حسن.

[2] الطبری :۱۱۰/۲۱.

[3] الطبری :۱۱۰/۲۱.

[4] الطبری :۱۱۳/۲۱.

[5] صحیح بخاری کتاب البیوع باب الخیاط : ۲۰۹۲. صحیح مسلم: ۲۰۴۱.

بزیدون دلته اودبلکه په معنی کښې استعمال شوې دې اودیولاکهٔ نه زیات یاددې نه هم زیات بایولاکهٔ څلوېښت زرونه زیات، یاداویازرونه هم زیات، یایولاکهٔ لس زره، اوپه یوغریب مرفوع حدیث کښې دی چه یولاکهٔ شل زره وو.(۱) دا مطلب هم بیان شوې دې چه دانسانانواندازه دیولاکهٔ نه زیاته وه. دابن جریرهم دغه مسلک دې اوهم دغه طریقه ددې ایت ((أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً)) اوایت «واشد خشیة» اوایت اوادنی کښې هم ده، یعنی ددې نه کم نه وو، ددې نه زیات دی. نو د یونس ﷺ ټول قوم مسلمان شو، حضرت یونس ﷺ ئې اومنولو، اوپه الله تعالی باندې ئې ایمان راوړو. اومونږهم دهغه مقرروخت یعنی دمرګ وخت پورې ورته ددنیافائدې ورکړې. اوپه بل ایت کښې دی چه دکلی ایمان هغه ته «دعذاب راتلونه پس» فائده ورنه کړه سوادیونس دقوم نه. کله چه هغوی ایمان راوړونومونږدهغوی نه عذاب لرې کړواوهغوی ته مودیومقررشوې میعادپورې فائده ورکړه.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاسْتَفْتِهِمْ | أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ | وَلَهُمُ الْبَنُونَ ﴿١٤٩﴾ | أَمْ خَلَقْنَا | |
| پس تپوس اوکړه ددوئ نه چې ایا رب ستا لره دی \| لونړه | او دوئ لره دی \| خامن | ایا پیدا کړې دی مونږه | | |
| نو اوس ددوئ نه تپوس اوکړه \| چې ایا ستاد رب لونړه دی \| او ددوئ دپاره خامن دی \| ایا مونږ فرښتې | | | | |
| الْمَلَائِكَةَ | إِنَاثًا | وَهُمْ شَاهِدُونَ ﴿١٥٠﴾ | أَلَا إِنَّهُمْ | مِنْ إِفْكِهِمْ |
| فرښتې \| ښځې \| او دوئ حاضر وو \| ښهٔ واوزه \| بیشکه دوئ \| دروغو خپلو نه | | | | |
| ښځې پیدا کړې دی \| اودوئ «د پیدا کولو په وخت» موجود وو \| خبر دار \| یقینا دوی دروغ | | | | |
| لَيَقُولُونَ ﴿١٥١﴾ | وَلَدَ اللَّهُ | وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿١٥٢﴾ | أَصْطَفَى | |
| خامخا وائی \| چې خوئې راوړې دې الله \| او بیشکه دوئ \| دروغژن دی \| ایا غوره کړې دی الله | | | | |
| وائی \| ..........چې دالله ﷻ اولاد دې \| او دوئ بیخی دروغژن دی \| ..........ایا دالله ﷻ | | | | |
| الْبَنَاتِ | عَلَى الْبَنِينَ ﴿١٥٣﴾ | مَا لَكُمْ | كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴿١٥٤﴾ | |
| لونړه \| په خامنو باندې \| څه شوی دی تاسو لره \| څرنګې حکمونه لګوی تاسو | | | | |
| دخامنو په مقابله کښې لونړه زیاتې خوښې دی \| داپه تاسو څه شوی دی \| داڅنګه غلطې فیصلې کوئ | | | | |
| أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٥﴾ | أَمْ لَكُمْ | سُلْطَانٌ مُبِينٌ ﴿١٥٦﴾ | فَأْتُوا | |
| ایا نصیحت نهٔ قبلوئ تاسو \| یا شته تاسو لره \| دلیل \| ښکاره \| پس راوړئ | | | | |
| بیاتاسو ولې نه پوهیږئ \| ........اوکه تاسو سره په دې خبره څه ښکاره دلیل وی \| نو هغه | | | | |
| بِكِتَابِكُمْ | إِنْ كُنْتُمْ | صَادِقِينَ ﴿١٥٧﴾ | وَجَعَلُوا | بَيْنَهُ |
| کتاب خپل \| که یئ تاسو \| رښتینی \| او جوړه کړې ده دوئ \| په منځ دالله کښې | | | | |
| خپل «زور» کتاب مو وړاندې کړئ \| که تاسو رېښتونی یئ \| اودوئ دالله ﷻ اودپیریانو | | | | |
| وَبَيْنَ الْجِنَّةِ | نَسَبًا | وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ | إِنَّهُمْ | |
| او په منځ دفرښتو کښې \| دنسب رشته \| او بیشکه معلومه ده \| فرښتو ته \| چې بیشکه دوئ به | | | | |
| په مینځ کښې ترمینزه هم یوه خپلوی جوړه کړې ده \| اوپخپله دپیریانو دا عقیده ده \| چې هغوئ به «الله ته» | | | | |

(۱) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة الصافات : ۳۲۲۹.

| الَّا عِبَادَ اللّٰهِ | يَصِفُوْنَ ۙ | عَمَّا | سُبْحٰنَ اللّٰهِ | لَمُحْضَرُوْنَ ۙ |
|---|---|---|---|---|
| سوا دبندګانو دالله نه | چي دوئ ئي بيانوي | دهغي نه | پاکي ده د الله | خامخا حاضر کړي کيږي |
| سوا د هغه | کومې چې داخلق بيانوي | چې الله ﷻ دهغه خبرو نه پاک دي | (يادساتئ) | حاضرولي شي |
| | | | | الْمُخْلَصِيْنَ ۝ |
| | | | | چي خالص کړي شوي دي |
| | | | | د الله تعالى د خاص بندګانو |

**قوله تعالى:: فَاسْتَفْتِهِمْ اَلِرَبِّكَ الْبَنٰتُ وَلَهُمُ الْبَنُوْنَ ۙ**

**دمشرک بې وقوفي چه فرښتې دالله تعالى لونړه دي:** الله تعالى دمشرکانوبيوقوفئ بيانوي چه دخپل ځان دپاره خوهلکان خوښوي اودالله تعالى دپاره لونړه مقررکوي.که دجينئ کيدوخبرواوري نومخونه ئې تور شي، اود الله تعالى لونړه ثابتوي.نوفرمائي چه دهغوي نه تپوس اوکړئ چه داتقسيم څنګه دې چه دستاسودپاره هلکان وی اودالله تعالى دپاره جينکئ وی.بيافرمائي چه دوی فرښتوته جينکئ په څه ثبوت باندې وائي؟ددوی دپيدائش وخت کښې دوی موجودوو؟دقران يوبل ايت ﴿وَجَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ﴾ کښې هم دغه بيان شوې دې.

**د مشرکانو درې کفرونه او درې دروغ::** دهغوي داقول صرف دروغ دی چه دالله تعالى بچی شته،هغه داولادنه پاک دې.نودهغه خلقو درې دروغ اودرې کفرونه اوشول.رومبې خوداکفرچه فرښتې دالله تعالى اولاد دې،اودويم داچه اولاد کښې لونړه،دريم داچه دفرښتوعبادت ئې شروع کړو.بيافرمائي چه اخرالله تعالى څه ځيزمجبورکړوچه هغه هلکان خوانه اخستل اودځان دپاره ئې لونړه خوښې کړې؟څنګه چه بل ايت دې چه تاسوته خوهلکان درکړې اودځان دپاره لونړه داخومره فضول خبره ده.دلته فرمائي چه په تاسوکښې عقل نشته چه داسې دعقل نه منلوو الاخبرې کوې.تاسوته معلومه نه ده چه الله تعالى باندې دروغ ونيل خومره بدکاردې؟ اوکه څه دليل دتاسوسره وی نوهغه راوړئ.ياکه ديواسماني کتاب نه تاسوسره څه دليل وی نوهغه راوړئ.ياداداسې فضول خبره ده چه دهغې څه عقلي يانقلي دليل نشته.اوهم په دومره باندې بس نه دې بلکه دپيريانونې دالله تعالى سره رشته جوړه کړه.دمشرکانويه دې قول سره چه فرښتې دالله تعالى لونړه دی.

حضرت صديق اکبر﷛ تپوس اوکړو،چه بيادهغوی مياندې څوك دی؟نوهغوی اووئيل د سردارنو پيريانو لونړه([1]).اوپيريانوته پخپله ، دې علم اويقين دې چه ددې خبروکولوو الابه دقيامت په ورځ باندې په عذابوکښې وی.په دې کښې دالله تعالى څه دښمنان خوتردې پورې کم عقلي کوی چه شيطان ته هم دالله تعالى رورواني.نعوذبالله.

الله تعالى ددې نه بالکل پاك اولرې دې.کوم مشرکان چه دا الزامونه لږوی، دروغ وائي،دهغې نه پس د ده د مثبت نه، خويه دې صورت کښې چه **يصفون** دضميرمرجع ټول خلق دی.نوددوی نه ئې هغه خلق بيل کړل کوم چه حق منی.اوپه ټولونبيانواورسولانوباندې ايمان راوړی.امام ابن جرير﵀ فرمائي چه دااستثناء **انهم لمحضرون** نه ده.يعني دوی ټولوته به عذاب ورکړې شي.خودالله هغه بنديان کوم چه داخلاص والاوودااقول لرغورغوښتونکې دې.والله اعلم.

[1]) الطبري :۱۲۱/۲۱.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَإِنَّكُمْ | وَمَا تَعْبُدُونَ ۝ | مَا أَنْتُمْ | |
| پس بیشکه تاسو | او هغه چې تاسو ئې عبادت کوئ | نهٔ یئ تاسو | |
| نو تاسو او ستاسو ټول معبودان (چې راغونډ شي نو) هیڅوک | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | بِفَاتِنِينَ ۝ | إِلَّا | مَنْ | هُوَ | صَالِ |
| دهغه نه (یعني دالله نه) | اړونکی هیڅ لره | مګر | اړونکی یئ | هغه چالره | چې هغه سوزیدونکی |
| دالله ﷻ نه اړولې نشي | ...................سوا دهغه کس نه چې جهنم ته تلونکې دې | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْجَحِيمِ ۝ | وَمَا مِنَّا | إِلَّا لَهُ | مَقَامٌ مَعْلُومٌ ۝ | وَإِنَّا | |
| ددوزخ دې | او نشته دې زمونږ نه | مګر دې هغه لره | یو مقام مقرر کړې شوې | او بیشکه مونږه | |
| او فرښتې وائی چې په مونږ کښې د هر یوې فرښتې دپاره یو خاص مقام دې | او دا مونږ | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَنَحْنُ | الصَّافُّونَ ۝ | وَإِنَّا | لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُونَ ۝ |
| خامخا مونږه | قطار کښې ولاړ خدمتګاران یو | او بیشکه مونږه | پاکی بیانونکی یو |
| ټول په صف کښې په ادب ولاړې یو | ....................او مونږ ټول (دهغه) پاکی بیانونکی یو | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِنْ كَانُوا | لَيَقُولُونَ ۝ | لَوْ أَنَّ | عِنْدَنَا | ذِكْرًا |
| او بیشکه وو دوئ | چې وئیل به ئې | که چرې بیشکه وې | زمونږ سره | ذکر (یعني یو کتاب) |
| اودې خلقو (یعني د مکې کافرانو) به وئیل | که مونږ ته دپخوانو خلقو پشان یود نصیحت | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنَ الْأَوَّلِينَ ۝ | لَكُنَّا | عِبَادَ اللَّهِ | الْمُخْلَصِينَ ۝ |
| درومبنو قومونو نه | خامخا به وو مونږه | بندګان دالله | خالص کړې شوی |
| کتاب راغلې وې | .........نو مونږ به ضرور د الله ﷻ خاص بندګان وو | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَكَفَرُوا | بِهِ | فَسَوْفَ | يَعْلَمُونَ ۝ |
| (خوچې هغه کتاب راغې) نو انکار ئې اوکړو | دهغې نه | پس ډیر زر به | معلومه شي دوئ ته (نتیجه ددې عمل) |
| بیادوئ ددې قران پاک نه انکار اوکړو | ........نو زر به (په خپل انجام) پوهه شي | | |

**قوله تعالیٰ:: إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ ۝**

**دمشرکانو انجام:** الله تعالیٰ مشرکانو ته فرمائی چه دستاسو د کفر ګمراهې او شرك تعلیم به هغه څوك قبلوی کوم چه ددوزخ دپاره پیداکړې شوې دی.کوم چه دعقل نه خالی په غوږونوکانړه او په سترګو ړانده وی.کوم چه دخناورو په شان بلکه دهغوی نه خوبدتروی.څنګه چه په بل ځائې کښې فرمائیلی دی چه ددې نه هم هغوی ګمراه کیدیشی چه هغوی ددماغونه خالی اوډباطل خوښونکی دی.دهغې نه پس دفرښتو دبرات او دهغه تسلیم اورضا او ایمان او بندګئ ذکردې چه هغوی پخپله وائی چه په مونږ کښې دهریو دپاره یو خاص ځائې او یو خاص عبادت مقرر دې.چه دهغې نه مونږنه لرې کیدې شواونه په هغې کښې زیاتې کمې کولې شو.دحضور ﷺ فرمان دې چه اسمان چق چق کوی او ورته چق چق کول پکار هم دی.په دې کښې دیو قدم ځائې هم خالی نشته چه هلته یوه فرښته رکوع،یاسجده کښې مصروف نه

وی.بیاحضورﷺ دهغه دری ایتونوتلاوت اوفرمائیلو(۱).په یوروایت کښې "اسمان ددنیا"لفظ دی.ابن مسعودﷺ فرمائی چه په اسمانونو کښې یولیشت ځائې هم داسې نشته چه هلته دیوې فرښتې قدمونه یاتندې نه وی.(۲)

**قوله‌تعالی:: وَاِنَّا لَنَحْنُ الصَّآفُّوْنَ**

**زمونږ مونځونو کښې صف بندي:**:حضرت قتادهؒ فرمائی چه مخکښې به سړواوښځویوځائې مونځ کولو خودې ایت دنازلیدونه پس سړی ئې مخکښې کړل اوښځې ئې روستوکړې.اومونږتولې فرښتې په صفونوکښې دالله تعالی عبادت کوو.ایت **والصفت صفا** په تفسیرکښې ددې بیان تیرشوې دې.

ولیدبن عبداللهؒ فرمائی چه ددې ایت نازلیدووخت پورې صفونه نه ووبیاصفونه هم مقرر شول. حضرت عمرﷺ به اقامت نه پس خلقوطرف ته اوکتل اوبیائې اوونیل چه "صفونه صحیح کړئ اونیغ اودریږئ.الله تعالی دستاسونه هم دفرښتویه شان صفونه غواړی څنګه چه الله تعالی فرمائی((وَاِنَّا لَنَحْنُ الصَّآفُّوْنَ)) ای فلانیه! مخکښې شه اواې فلانکیه روستوشه"بیابه مخکښې شواومونځ به شروع کړو.(۳)(ابن ابی حاتم)صحیح مسلم کښې دی چه حضورﷺ فرمائی چه مونږته دری داسې فضیلتونه راکړې شوې دی چه په هغې کښې نورڅوك زمونږسره نشته.زمونږصفونه دفرښتویه شان جوړکړې شوې دی. زمونږدپاره توله زمکه جمات جوړکړې شوې ده.اوزمونږدپاره دزمکې خاوره پاکولووالاجوړه کړې شوې ده.الخ (۴).مونږدالله تعالی صفت اوپاکی بیانولووالایو.دهغه بزرګی اولویې والې بیانولو والا یو. دټولونقصانونونه هغه پاك ګنړو.مونږټولې فرښتې دهغه غلامان یو.دهغه محتاج یو.دهغه مخکښې دکمزورې اوعاجزې اظهارکوو.نودادرې واړه صفتونه دفرښتودی.داهم وئیلې شوی دی دتسبیح کولو والونه مطلب دمونځ کولووالادی.اوپه ایت کښې دی.﴿قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا﴾ الخ، یعنی کافرانواووئیل چه د الله تعالی اولادشته.الله تعالی ددې نه پاك دې.البته فرښتې دهغه عزت والابندیان دی.دهغه فرمان منی. دهغه په حکمونوباندې عمل کوی.هغه دهغوی مخکښې روستوښه پیژنی.هغه چاته دسفارش اختیارهم نه ورکوی.سواددې نه چه دچادپاره الله تعالی راضی وی.هغوی خودالله تعالی دویرې نه ریږدی.په هغوی کښې چه څوك ځان ته دعبادت لائق اووائی،مونږهغوی دوزخ ته غورځوو . د ظالمانو دپاره مونږسره هم دغه سزاده.

**قوله‌تعالی:: وَاِنْ كَانُوْا لَيَقُوْلُوْنَ**

**د کافرانو د یوې خبرې تردید:**:نبیﷺ هغوی ته ورغې اوهغې نه مخکښې به دوی وئیل که مونږته څوك راغلې وې،چه هغوی مونږته دالله تعالی لارخودلې وه اوزمونږنه دمخکوخلقوخبرې راته دنصیحت دپاره کړې وې اومونږته ئې دالله تعالی‌کتاب راوړې وې،نومونږبه دالله تعالی مخلص مسلمانان جوړشوې وې.

څنګه چه په بل ایت کښې دی.﴿قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا﴾ الخ، یعنی دیرغټې غټې قسمونه خوری که دالله تعالی یونبی مونږته راغلې وې نومونږبه اطاعت قبول کړواوهدایت طرف ته به روان شوخوچه کله دالله تعالی نبی راغلونوهغوی اوتختیدل اوپه یوایت کښې دی.﴿اَنْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ﴾ نودلته ئې فرمانیلی

---

(۱) کتاب الصلاة لابن نصر :۲۵۵.

(۲) الطبری :۱۲۷/۲۱.

(۳) الطبری :۱۲۸/۲۱.

(۴) صحیح مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة : ۵۲۲، السنن الکبری :۸۰۲۲.

دی چه کله دا خواهش نې پوره شونوهغوی کفرشروع کړو.اوس به هغوی ته زرمعلومه شی چه دالله تعالی کفرکولوالااودنبیﷺ نه منلوالاخه نتیجه وی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ سَبَقَتْ | كَلِمَتُنَا | لِعِبَادِنَا | الْمُرْسَلِيْنَ ۝ | |
| او په تحقيق سره مخکښې شوی ده | خبره زمونږه | دبندګانو زمونږ | راليږلو شوو سره | |
| او د وړاندې نه زمونږ پيغمبرانو بندګانو دپاره دا فيصله شوې ده | | | | |
| اِنَّهُمْ | لَهُمُ | الْمَنْصُوْرُوْنَ ۝ | وَاِنَّ | جُنْدَنَا لَهُمُ |
| چې بيشکه دوې چې دی | هم دوئ سره | امداد کيدې شي | او بيشکه الښکر زمونږه | هم دوئ به |
| چې ددوئ به مدد کولې شي ......................... او هم زمونږ لښکر به غالب راځی | | | | |
| الْغٰلِبُوْنَ ۝ | فَتَوَلَّ | عَنْهُمْ | حَتّٰى حِيْنٍ ۝ | وَّاَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ |
| غالب وی | پس مخ واړوه | ددوئ نه | دخه وخته پورې | اوګوره دوئ ته | پس ډير زر به |
| نوتريو وخته پورې ددوئ دخبرو پرواه مه ساته ......................... اولړ ددوئ حال ته ګوره | | | | |
| يُبْصِرُوْنَ ۝ | اَفَبِعَذَابِنَا | يَسْتَعْجِلُوْنَ ۝ | فَاِذَا | نَزَلَ |
| دوئ اووينی پخپله | آيا پس عذاب زمونږ ته | تلوار کوی دوئ | پس هر کله چې | راکوز شي عذاب |
| دوی به پخپله هم ډير زر خپل انجام اووينی ......... آيادوئ زمونږ عذاب ته تلوار کوی انوخه وخت | | | | |
| بِسَاحَتِهِمْ | فَسَآءَ | صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ ۝ | وَتَوَلَّ | عَنْهُمْ |
| صحن (انګې) ددوئ ته | پس بد دی | صبا ديرولو شوؤ | او مخ اوګرزوه | ددوئ نه |
| چې دغه عذاب ددوئ ميدان ته راکوز شي نو دويرولې شوؤ خلقو دپاره به ډير خراب سحر وی او ته | | | | |
| حَتّٰى حِيْنٍ ۝ | وَّاَبْصِرْ | فَسَوْفَ | يُبْصِرُوْنَ ۝ | |
| دخه وخته پورې | اوګوره | پس ډير زر به | دوئ اووينی پخپله | |
| ترخه مودې پورې ددوئ پرواه مه کوه اودوئ ته ګوره | | | | |

**قوله تعالی:: وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا**

**دالله لشکرغالب،هميشه غالب وی:** دالله تعالی ارشاددې چه مونږبه مخکښې کتابونوکښې هم ليکلی دی اودنبيانوبه خولوموهم داوئيلي دی چه په دنيااواخرت کښې دالله تعالی دنبيانواونيك خلقوانجام ښه وی.څنګه چه فرمائيلي دی.﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ﴾ اوفرمائيلي دی.((اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا)) يعنی زمارسول اوايمان دارخلق به دواړوجهانونوکښې غالب وی.دلته هم وئيلي شوی دی چه رسولانوسره زمونږوعده شوې ده چه هغوی منصوردی.مونږبه پخپله دهغوی مددکوو.تاسوګورئ چه دهغوی دښمنان به څنګه په خاوروکښې ملاؤشول؟يادساتئ چه زمونږلشکربه غالبه وی.اواخرکښې به هغوی کامياب وی.ته يومقرروخت پورې دصبراوستقامت معامله کوره،دهغوی په تکليفونو باندې صبراوکړه،مونږبه تاپه ټولوباندې غالبه کړو.دنيااوکتل چه هم دغه شان اوشوه.اوته هغوی ته ګوره چه الله تعالی هغوی څنګه نيسی.اوپه څنګه ذلت اوتوهين سره به هغوی نيسی. دوی به ټولې رسوايانې پخپله وينی.حيرانتياده چه دوروکوعذابوسره اود غتو عذابونو معلوميدوسره هم دوی وائی چه کله به راځی؟نوبس هغه ته

جواب ورکړې شي چه کله دعذاب په میدانونوکښې،محلونوکښې،په صحن کښې،هغه ورځ به په هغوی باندې ډیره سخته وی.هلاك اوبرباد به شي.

**قوله تعالی:: أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ**

**کفارو ته رټنه او په دوئ باندې تعجب::** صحیح بخاری کښې دی چه دخیبرپه میدانونوکښې حضورﷺ سحروختی دکافرانوپه بې خبرتیاکښې ورغې.هغه خلقودخپل عادت مطابق دپټوسامان راخستې وواوښارنه بهرنې درباني فوج اولیدونو اوتختیدل اوښاروالوته ئې خبراوکړوهغه وخت کښې حضورﷺ هم دغه اوفرمائیل چه الله تعالی ډیرلوې دې خیبرخراب شو.مونږچه کله دیوقوم میدانونوته لاړ شونو هغه خراب شي.([1])بیانې په دویم ځل دړومبی حکم تاکیداوکړو.چه دځه وخت دپاره ددوی نه بې پرواه شه اودوی پریږده اودوی ته ګوره.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سُبْحٰنَ رَبِّكَ | | | | |
| پاکی ده \| رب ستالره \| | | | | |
| رَبِّ الْعِزَّةِ | عَمَّا | يَصِفُونَ | وَسَلٰمٌ | عَلَى الْمُرْسَلِينَ |
| چې رب دعزت دې | دهغه خبرونه | چې جوړوی ئې دا خلق | او سلام دې | په رسولانو باندې |
| نو ستارب چې دعزت خاوند دې | ددوئ د بیان کړوخبرو نه پاک دې | | اوپه ټولو پیغمبرانو دې سلام وی | |
| وَالْحَمْدُ | لِلّٰهِ | رَبِّ الْعٰلَمِينَ | | |
| او ثناده | الله لره | چې رب دمخلوقاتو دې | | |
| اوټول تعریفونه الله ﷻ دپاره دی | چې دټول مخلوق رب دې | | | |

**قوله تعالی:: سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ**

**حمددالله اوسلام په پیغمبرانو:** الله تعالی ددې ټولوځیزونونه خپل خلاصې بیانوی کوم چه مشرکانودالله طرف ته منسوب کړې دی.لکه اولاد،شریك وغیره.هغه ډیرې لوئ اوبې مثاله عزت والادې هغه دې ورواود دې دروغژنو اوافتراکونکو خلقودبهتان نه پاك دې.دالله تعالی په ټولورسولانوباندې سلام دې.ځکه چه دهغوی ټولې خبرې هغه عیبونونه پاکې دی کومې چه دمشرکانوپه خبروکښې دی.بلکه دنبیانو علیهم السلام هغه خبرې اوصفتونه کوم چه هغوی دالله تعالی د ذات بیانوی هغه ټولې صحیح اوپه حق دی.دهغه دذات دپاره ټول حمداوثناسزاواردی.په دنیاکښې د ابتداء نه د انتهاء پورې تعریف د هغه ذات دپاره دې. هغه په هرحال کښې دحمداوثناقابل دې.په تسبیح باندې دهرقسمه نقصان نه دهغه ذات دلرې والې پته لږی نولازم ده چه هرقسمه کمالونه په هغه یواځې ذات کښې وی هغه په ښکاره الفاظوکښې دحمدنه ثابت کړې ده. دوی د پاره چه نقصان نفی اودکمالونو ثابت کیدل ترې اوشي .هم دغه شان دقران مجیدپه ډیروایتونوکښې دتسبیح اوحمدیوځائې ذکرشوې دې.دحضرت قتادهرحمه الله نه روایت دی.

چه حضورﷺ فرمائیلی دی چه تاسوپه مابانديې سلام وائې،اوپه نبیانوباندې هم سلام وائې،ځکه چه زه هم په هغه ټولونبیانوکښې یونبې یم([2])(ابن ابی حاتم) داحدیث په مسندکښې روایت شوې دې.ابویعلی کښې یوضعیف حدیث کښې دی چه حضورﷺ به کله دسلام اراده کوله نوهغه درې ایتونه به نې

[1] صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوة خیبر:٤١٩٧. صحیح مسلم: ١٣٦٥.
[2] الطبری :١٣٤/٢١.

# علمی وعظونه

# اوتقریرونه

مرتب: مولاناشاه فیصل فاضل وفاق المدارس،
امداد العلوم، جامعه اسلامیه چارسده

## خصوصیات

① د مختلفو تقریری کتانونو نه د موثرو تقریرینو انتخاب
② د موضوع د وضاحت د پاره د قرآنی آیاتونو نه استدلال
③ د موضوع د وضاحت د پاره د احادیثو نه استدلال
④ د موضوع د وضاحت د پاره د نیکانو خلقو د واقعات بیان
⑤ د موضوع د وضاحت د پاره د مثالونو بیان
⑥ د معاشري د غلطو لارو چارو ښودنه
⑦ د غلطو لارو چارو د اصلاح طریقه

خورونکي
فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

اولوستل اوسلام به نې اوکړو(۱). ابن ابی حاتم کښې دی چه کوم کس داغواړی چه په ښه پیمانه باندې هغه ته اجرملاوشی نوچه دچاپه مجلس کښې هغه وی دهغه ځائې نه پاڅیدو وخت کښې دی هغه دادرې ایتونه اولولی.اوپه مسندکښې داروایت دحضرت علیؓ نه موقوفاروایت شوې دې.دطبرانی په حدیث کښې دی چه کوم کس دهرفرض مونځ نه پس دادرې ایتونه اولولی،هغه ته به پوره پیمانه باندې اجرملاویږی.دمجلس دکفارې باره کښې په ډیروحدیثونوکښې راغلی دی چه داوئیل یکاردی.«سبحانك اللهم وبحمدك لااله الاانت استغفرك اتوب اليك»(۲) ماپه دې مسئله باندې یومستقل کتاب لیکلې دې.

الحمدلله دسوره الصافات تفسیرختم شو.فالحمدلله.

| ایاتونه | | | سورة ص وهی ثمان وثمانون اية وخمس ركوعات | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | | |
| ۸۸ | | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | | ۵ |

صٓ وَالۡقُرۡاٰنِ ذِی الذِّكۡرِ ۞ بَلِ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا

ص | قسم دې په قران | چې نصیحت والا دې | بلکه هغه کسان | چې انکار ئې کړې دې |

صاد په قران پاک باندې قسم دې | چې دنصیحت نه ډک (کتاب) دې | بلکه دا کافر صرف

فِیۡ عِزَّةٍ وَّشِقَاقٍ ۞ كَمۡ اَهۡلَكۡنَا مِنۡ قَبۡلِهِمۡ

په تکبر کښې دی | او په ضد کښې مبتلا دی | څومره ډیر هلاك کړی دی مونږه | مخکښې ددوئ نه

په غرور اوپه مخالفت کښې پراته دی | ............... ددوئ نه وړاندې مونږ ډیر

مِّنۡ قَرۡنٍ فَنَادَوۡا وَّلَاتَ حِيۡنَ مَنَاصٍ ۞

دقومونو نه | پس هغوئ چغې وهلی دی | اونهٔ دی | هغه وخت | دخلاصیدو |

قومونه هلاک کړی وو | نوهغوئ ډیرې نعرې سورې وهلې | خود خلاصی وخت تیرشوې وو

**قوله تعالی: وَالۡقُرۡاٰنِ ذِی الذِّكۡرِ ۞**

**د قران پاک په عظمت او فضیلت باندې د منکرینو رټنه او ویره:** حروف مقطعات.کوم چه دسورتونوپه شروع کښې راغی ددې تول تفصیل په سوره بقره کښې تیرشوې دې.دلته دقران قسم خوړلې شوې دې او دائې دنصیحت والاکرخولې دی.ځکه چه ددې په خبروباندې دعمل کولووالادین اودنیادواړه ښه شی.اوپه ایت کښې دی ((فِيۡهِ ذِكۡرُكُمۡ)) په دې قران کښې دستاسودپاره نصیحت دې.اودامطلب هم دې چه قران شرافت بزرګی،عزت اوعظمت والا دې، او د دې قسم جواب دبعضوپه نزدخو(اِنۡ كُلٌّ اِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ) بعضې وائی (اِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ) دې.خودا ډیرمناسب نه ښکاری.حضرت قتادهؒ فرمائی چه ددې جواب ددې نه پس ایت کښې دې (۳).ابن جریرهم دابنه بیانوی.بعضې عربیان وائی چه ددې جواب (ص)دې اوددې لفظ معنی صداقت او حقانیت ده.یوقول داهم دې چه دټول سورت خلاصه ددې قسم جواب دې.والله اعلم.

---

(۱) ابن ابی حاتم :۱۲/۱۲۵. الدر المنثور:۸/۳۷۲.

(۲) ابو داود کتاب الادب باب کفارة المجلس : ۴۸۵۷ ، وسنده صحیح ، ترمذی : ۳۴۳۳، طبرانی : ۱/۷۹.

(۳)الطبری : ۲/۱۴۰.

بیافرمانی چه قران خوټول عبرت اونصیحت دي،خوددې نه فائده هغه څوك اوچتوی دچاپه زړونوکښی چه ایمان وی.کافرخلق ددې فائدې نه محروم دی چه هغوی کبرکونکی اومخالف دی.دوی دې دخان نه مخکښی دخان په شان دخلقوپه انجام باندې نظراوکړی اودخپل انجام نه دې ویریږی.مخکښی امتونه موږهم په دې جرم باندې تهس نهس کړل.عذاب راتللوسره خولوې لوې خلق په ژړاشول،ډیرې زارۍ اومنتونه ئې اوکړل،خودهغه وخت ټولې خبرې بې فائدې وې.څنګه چه فرمانیلی دی.(فَلَمَّا اٰحَسُّوْا بَاْسَنَا) زمونږعذابونه معلومیدوباندې دهغه نه بچ کیدل اوتختیدل غوښتل . خو دا څنګه کیدیشی؟ابن عباس﷛ فرمانی چه اوس دتختیدووخت نشته،نه دفریادوخت شته.هغه وخت هیڅ فریادنشی کیدې،چه څومره هم چغې اووهې،ټولې بې فائدې دی.اوتوحیدمنل،بې فائدې اوبې کاره دی.دابې وخته چغې دی.،،لات،، معنی ،،لاده،،،په دې کښی "ت" زیاته ده.څنګه چه ثمت کښی هم (ت) زیاته وی،اوپه ربت کښی هم،دامفضوله ده اوپه دې وقف دې.دامام ابن جریر﷫ قول دی چه دا(ت)حین سره ملاؤده یعنی ،،ولاتحین،، دې خومشهوررومبئ ده.زیاتو،،حین،، په زبرباندې ونیلي ده،نومطلب داچه هغه وخت دفریادکولونه دې.بعضې دلته زیرونیل هم جائزګنړلی دی.په لغت کښی (نوص) روستوتلوته وائی.(بوص) وائی مخکښی تلوته.نومقصددادې چه داوخت دتختیدونه دې.والله الموافق.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَعَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ | مُّنْذِرٌ | مِّنْهُمْ | وَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ | هٰذَا سٰحِرٌ |
| اوتعجب اوکړودې خلقو چې راغې دوئ ته | یویرونکې | ددوئ نه | اواونیل | کافرانو ادا جادوګر دې |
| اودوئ په دې خبره ډیر تعجب اوکړو چې دوئ ته هم په دوی کښې یو ویرونکې راغلي دې اوکافران وائی | | | | |
| كَذَّابٌ ۝ | اَجَعَلَ الْاٰلِهَةَ | اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ | اِنَّ | هٰذَا لَشَيْءٌ |
| سخت دروغژن | آیا ده اوګرخول ټول خدایان | خدائي یو | بیشکه | دا خو یو څیز دې |
| چې داخو یو درغژن جادوګردې آیا د ددومره ډیرو خدایانو په ځائې صرف یو خدائې معبود جوړ کړو ؟ | | | | |
| عُجَابٌ ۝ | وَانْطَلَقَ | الْمَلَاُ | مِنْهُمْ | اَنِ امْشُوْا وَاصْبِرُوْا |
| ډیر عجیبه | او روان شو | مشران | دهغوئ نه | چې ځئ ا او ټینګ شئ ا |
| داخو ډیره عجیبه خبره ده او ددوئ مشرانو په تلوتلو کښې اوونیل چې تاسو لاړشئ دخپلو معبودانو | | | | |
| عَلٰٓى اٰلِهَتِكُمْ ۚ | اِنَّ | هٰذَا لَشَيْءٌ | يُّرَادُ ۝ | |
| په خدایانو خپلو باندې | بیشکه | دا خو یو څیز دې | اراده کړې شوې دپاره دبل غرض | |
| په عبادت کلک ولاړ وسیږئ دا نوې خبره ضرور یو داسې څیز دې چه اراده ئې کړې شوې ده | | | | |
| مَا سَمِعْنَا | بِهٰذَا | فِي الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ ۚ | اِنْ هٰذَآ | اِلَّا |
| نۀ ده اوریدلې مونږه | داخبره | په ملت (دین) روستنی کښې | نۀ دې دا هیڅ څیز | مګر |
| مونږ خو داخبره هیچرې په پخوانی مذهب کښې نه ده اوریدلې داخو بس دخان نه جوړه شوې | | | | |
| اخْتِلَاقٌ ۝ | ءَاُنْزِلَ | عَلَيْهِ | الذِّكْرُ | مِنْۢ بَيْنِنَا ؕ |
| دخانه جوړکړې شوی دروغ دی | آیا نازل کړې شو | په ده باندې | دا ذکر (قران) | دمنځ زمونږ نه |
| خبره ده آیا په مونږ ټولو کښې هیله په ده باندې دالله ﷻ کلام نازل شوې دې ؟ | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَلْ هُمْ | فِيْ شَكٍّ | مِّنْ ذِكْرِيْ | بَلْ لَّمَّا يَذُوْقُوْا | عَذَابِ ۞ | |
| بلکه دوئ | په شك شك کښي دي | دذکر زمانه | بلکه نه دي څکلي دوئ | عذاب زما | |

(الله فرمائي) نه بلکه دوئ ته زما په نصيحت کښي شک دي ابلکه تراوسه ئي زما دعذاب مزه نه ده څکلي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ عِنْدَهُمْ | خَزَآئِنُ | رَحْمَةِ رَبِّكَ | الْعَزِيْزِ | الْوَهَّابِ ۞ | اَمْ لَهُمْ |
| آيا ددوئ سره دي | خزاني | درحمت درب ستا | چي غالب دي | بښونکي دي | آيا دوئ لره ده |

آيادوئ سره ستا د غالب او ورکونکي رب خزانې دي ؟ | .................... آيا دوئ سره

| | | | |
|---|---|---|---|
| مُّلْكُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَمَا بَيْنَهُمَا |
| بادشاهي | داسمانونو | او دزمکي | او دهغي چي په منځ ددې دواړو کښي دي |

داسمانونو اوزمکي اوددې په مينځ کښي چي څه دي دهغي واک اختيار دي

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَلْيَرْتَقُوْا | فِي الْاَسْبَابِ ۞ | جُنْدٌ | مَّا هُنَالِكَ |
| پس او دخيژي دوئ (آسمان ته) | په دنياوي اسبابو کښي | دوئ خو يو وړوکي لښکر دي | چي هم دلته |

که داسې وي نوبيا دوئ ته پکار دي اچي د رسو په ذريعه (آسمان ته) او خيژي | داهم د هغه ډلو نه يوه

| | |
|---|---|
| مَهْزُوْمٌ | مِّنَ الْاَحْزَابِ ۞ |
| شکست خوړونکي دي | دډلو نه |

ډله ده | چا چي ماتي (شکست) خوړلي دي

**قوله تعالى: وَعَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ**

**د رسالت دمنکرينو تعجب او دهغه جواب؟** دحضورﷺ په نبوت باندې دکافرانو د خندا والا حيرانتياده، څنګه چه په دې ايت کښي دي.﴿اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا﴾ چه خلق په دې خبره باندې حيران شول چه په هغوی کښي يوانسان ته مونږوحي اوليږله چه هغه خلق هوښيارکړي اوايماندارو ته ددې خبرې خوشخبري ورکړي چه هغه خلقوډپاره دهغه سره ښه تياري ده.کافران خوزمارسول ته جادوګروائي.نودلته دي چه په هغوی کښي هم دهغوی په شان يوانسان رسول راتلوباندې هغوی ته حيرانتياده اوهغوی به ونيل چه ته جادوګراودروزغژن ني.درسول اللهﷺ رسالت سره دالله تعالى په توحيدباندې هم دهغوی شك وو،اوونيل چه ددې دومره زيات خدايانو په بدله کښي ته وائي چه الله تعالى يودې،اودهغه څوك شريك نشته.دې بيوقوفانوته چه دخپلومشرانوکتلو په وجه دکوم شرك عادت جوړشوې دې،دهغې خلاف اوازاوريدو په وجه ددوی زړونه اودريدل شروع شول اودتوحيدناپيژندګلوخيژني پيژندل شروع کړل.ددوی مشرانواوسردارانو په کبرسره مخ اړولې وواواعلان ني کړې ووچه چه پخپل زوړمذهب باندې اوسئ اوددوی خبرې مه منئ اودخپل خدايانوعبادت کوئ.دا خوصرف دخپل مطلب خبره کوی.په دې بهانه باندې خپله خبره کوی چه تاسوده خبره اومنئ اودې دستاسومشرشي اوتاسوددې خبره منونکي.

**ددې ايتونو دنزول وجه:** ددې ايتونودنازليدلووجه داده چه يوځل دقريشوسرداران راجمع شول چه په هغې کښي ابوجهل بن هشام،عاص بن وائل،اسودبن المطلب،اسودبن عبد يغوث وغيره هم وو.اوتولو په دې باندې فيصله اوکړه چه نن به دابوطالب سره اخری فيصله کوو.هغه دې په انصاف سره يوه خبره زمونږپه ذمه کړې اويوه دې دخپل ورارہ په ذمه.څکه چه هغه اوس اخری عمرته رسيدلې دې. د ژوند

آخری وخت ني دي که چرې هغه مړشواودهغه دمرګ نه پس مونږ محمد(ﷺ)ته څه نقصان ورکړو نودعربوخلق به مونږته خبرې کوی چه دهغه بوډاپه ژوندکښې مو ورته څه نه شوونيلی اودهغه دمرګ نه پس موخپله بهادری اوخودله.نودوی لاړل يوکس ني اوليږلوهغه دابوطالب نه اجازت اوغوښتلو، د اجازت ملاويدونه پس دوی ټول کورته ورغلل.اوورته ني اوونيل جناب آته زمونږ سردارني، بزرګ ني، مشرني. مونږدستادوراره نه تنګ يو،تاسودانصاف سره زمونږ فيصله اوکړئ. ګورئ مونږدستاسونه انصاف غواړوهغه دې زمونږخدايانوته بدردنه وائي،اومونږدې نه په عذابوی. هغه ته اجازت دې چه دچاعبادت کوی خوزمونږخدايانوته دې څه نه وائی.ابوطالب يوکس اوليګلو او حضرت محمدﷺ ته ني اوازاوکړو.اوورته ني اوونيل،چه اې وراره ګورې‌اداستادقوم سرداران اومشران ټول راجمع شوی دی اودستانه صرف داغواړی چه ددوی خدايانوپسې خبرې مه کوه اودهغوی بې عزتی مه کوه.دوی ټول تاته په خپل دين باندې دعمل کولوازادی درکوی.حضورﷺ اوفرمائيل. تره! زه دوی دښه اوبهترين ښه والی طرف ته نه راغواړم؟ابوطالب ورته اوونيل هغه څه دی؟اوني فرمائيل دوی دې يوه کلمه اووائی،صرف ددې ونيلوپه وجه باندې ټول عرب به ددوی دحکم لاندې شی اوپه ټولوعجموبه ددوی حکومت شی.ابوجهل ملعون تپوس اوکړوهغه اووايه هغه کلمه څه ده؟يوه نه مونږلس کلمې ونيلوته تياريو.رسول اللهﷺ ورته اوفرمائيل چه اووائې. **لااله الاالله** دې اوريدوسره ني اوازونه شروع کړل چه ددې نه علاوه ته څه غواړې هغه مونږدرکوو،حضورﷺ اوفرمائيل که تاسونمرهم زما په لاس کښې کيدئ نوبيابه هم زه دستاسونه ددې کلمې نه علاوه څه نه غواړم.دې خبرې اوريدو سره ټول خلق غصه شول اواودريدل اواوني ونيل چه والله مونږتاته،اوستارب ته کنځل کوو.چاچه تاته داحکم کړې دې.دوی لاړل اودهغوی سردارانوهم داونيل چه پخپل دين قائم اوسئ اودخپل خدايانو عبادت کوئ.معلومه شوه چه ددې خواراده بل څه ده دې خوځان مشرکول غواړی.(ابن ابی حاتم وغيره)

يورروايت داهم دې چه دهغوی دتګ نه پس حضورﷺ خپل تره ته اوونيل چه تاسوداکلمه اووائې.هغه اوونيل نه! زه خودخپل پلارنيکه اومشرانوپه دين باندې يم.په دې باندې الله تعالی خپل نبیﷺ ته اوفرمائيل چه چاته ته غواړې هدايت نشې کولې.اوروايت دې چه هغه وخت ابوطالب بيماروو،اوپه هغه بيمارې کښې هغه مړشو.کوم وخت چه حضورﷺ تشريف راوړوهغه وخت دابوطالب سره دناستې دپاره ديوکس ځانې خالی وو،نورټول کوردسړونه ډک وو. نوابوجهل خبيث داسوچ اوکړوکه حضورﷺ ابوطالب سره کيناستونودېراثربه اوکړی،په دې وجه باندې هغه ملعون هلته پخپله کيناستواوحضورﷺ ددروازې خواه کښې کيناستو.حضورﷺ چه کله ديوې کلمې ونيلواوونيل نوټولو اوونيل چه يوه نه لس.مونږټول انتظارکووهغه کلمه څه ده؟اوچه کله ني دحضورﷺ دژبې نه دتوحيدکلمه واوريده نوټول اوتختيدل.اووني ونيل داواورئ، دې خود ټولوخدايانونه يوخداې جوړوی.په دې باندې دا آيتونه دعذاب پورې نازل شول (١).امام ترمذی دې روايت ته حسن وائی.مونږخوداخبره نه په خپل دين کښې ليدلې ده اونه دنصرانيانوپه دين کښې.بالکل غلط اودروغ خبره ده.داخومره د حيرانتياخبره ده چه الله تعالی ته ښکاره نه شوه اوپه هغه باندې قران نازل شو.څنګه چه په نورو آيتونوکښې دی.﴿ وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ ﴾ يعنې په دې دواړو ښارونو کښې په يولوې سړی باندې قران ولې نازل نه شو؟چه دهغې په جواب کښې د الله تعالی ارشاددې،چه داخلق دالله تعالی د رحمت تقسيمولووالادی.دوی خودومره محتاج دی چه خپله روزی اودرجې هم تقسيموی.يعنی دا اعتراض هم دهغوی دحماقت انتهاء ده. الله تعالی فرمانی دې،ددوی دشک نتيجه اوروجه داده چه اوسه پورې

---

(١) الترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة صاد : ٣٢٣٢. .

دوی لره خوړله.زمونږعذابونه ئې نه وولیدلې.صبابه چه دقیامت په ورځ په دیکویاندې دوزخ ته غورځولې شي نوهغه وخت به دوی ته دخپلې سرکشئ مزه ملاوشی.

**قوله تعالی: أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ**

**دالله تعالی قدرت:** بیاخپله قبضه اوخپل قدرت ظاهروی،چه هغه څه غواړی کوی،چاته چه څه غواړی ورکړی، عزت اوذلت دهغه په لاس کښې دی.هدایت اوضلالت دهغه طرف نه دی.دهغه چه پخپلو بندګانو کښې په چاخوښه وی وحی نازل کړی اوچه دچاپه زړه باندې مهراولږوی.دبندګانوپه اختیار کښې څه هم نشته.هغوی بې بس،اومجبوردی.په دې وجه باندې فرمائیلې دی.چه دهغوی سره ددې لوې مرتبې والاخذې درحمتونوخزانې دی؟ یعنی نشته.څنګه چه فرمائیلی دی.( أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ) که دالله تعالی دخدایئ څه حصه هغوی سره وې نودې شومانوبه چاباندې یوه ټکره هم نه وه خوړلې.یاپه هغه خلقوباندې دالله تعالی فضل لیدوسره ددوی حسددې؟مونږدابراهیم اولادته حکمت اودېرلوې سلطنت ورکړې دې.په هغوی کښې بعضوخوایمان راوړواوبعضوایمان رانوړو.چه هغوی به ددوزخ خشاك جوړیږی.هغه اوردهغوی دپاره کافی دې.اوپه ایت کښې دی.( قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَائِنَ رَحْمَةِ رَبِّي إِذًا لَّأَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الْإِنفَاقِ ۚ وَكَانَ الْإِنسَانُ قَتُورًا) یعنی که زمادرب درحتمونو خزانې دستاسوپه لاس کښې وې نوتاسوبه دکمیدودویرې نه خرچ کولې،انسان ناشکره دې.

**قوله تعالی: أَأُنزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِن بَيْنِنَا**

**هم دا خبره د صالح ﷺ قوم هم کړې وه:** د صالحﷺ قوم هم خپل نبی ته هم دغه ونیلی وو.(أَأُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِن بَيْنِنَا) یعنی مونږټول ئې پریخودواوپه ده باندې وحی نازل شوه؟نه اودې دروغژن اوشریردې.الله تعالی ورته اوفرمائیل چه صباته ئې معلومه کړئ چه داسې څوك دی؟بیائې اوفرمائیل چه په زمکه اواسمان باندې اختیاردچادې؟که داسې ده نوبیاداسمانونو په لاروباندې اوخیژئ،اووم اسمان ته اورسئ:دادې خاتې لشکریه هم زرشکست اوذلت اوومومی.اومغلوب اوذلیل به شی.څنګه چه نورلوې لوې ګروپونه دحق سره اوجنګیدل او ختم شول.اوڅنګه چه په ایت کښې دی.(أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ) دهغوی قول دې چه مونږ ډیریو اوفتح به زمونږوی؟واورئ هغوی ته به شکست وی اوهغوی به شاته تختی اوکمزورې اوبدحواسه به وی.نودبدرپه ورځ دالله تعالی خدائې خبرې رښتیاثابتې کړې اودهغه دعذابونوورځ خودقیامت ورځ ده.چه هغه ډیره سخته اوبې انتهاوحشت اودهشت والاده.

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَوْمُ نُوحٍ | قَبْلَهُمْ | كَذَّبَتْ | |
| قوم دنوح | مخکښې ددوئ نه | دروغ ګڼرلی دی | |
| د دوئ نه وړاندې د نوح ﷺ قوم | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَوْمُ لُوطٍ | وَثَمُودُ | ذُو الْأَوْتَادِ | وَفِرْعَوْنُ | وَعَادٌ |
| او قوم دلوط | او ثمودیان | میخونو والا | او فرعون | او عادیانو |
| اوعادیانو اوفرعون چې د میخونو ټک وهونکې وو اوثمودیانو او د لوط علیه السلام قوم | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَذَّبَ الرُّسُلَ | إِلَّا | إِن كُلٌّ | أُولَٰئِكَ الْأَحْزَابُ | وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ | |
| دروغ ئې ګڼرل رسولان | مګر | نه وو دا ټول | دا وې ډلې لوئې | او ایکه والو | |
| اودبنږاوسیدونکو هم خپل پیغمبران درغژون ګنړلی وو اهم دالوئې لوئې ډلې وې ادوئ ټولوخپل | | | | | |

فَحَقَّ عِقَابِ ﴿١٤﴾ وَمَا يَنْظُرُ هٰٓؤُلَآءِ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً

پس ثابت شو په هغوئ | عذاب زما || اونه کوی انتظار | دا خلق | مګر | دیوې چغې |

رسولان دروغژن ګڼړلي وو | نوزما دعذاب مستحق شو | او داخلق صرف دیوې درنې چغې انتظار کوی

مَّا لَهَا مِنْ فَوَاقٍ ﴿١٥﴾ وَقَالُوْا رَبَّنَا عَجِّلْ لَّنَا قِطَّنَا

چې نشته هغې لره | څه وقفه | اووائی دوئ | اے ربه زمونږه | زر راکړه | مونږ ته | حصه زمونږه

چې دهغې په مینځ کښې به هیڅ وقفه نه وی || او داخلق د (توقو په طوروائی) چې ائے زمونږ ربه! دحساب د ورځې

قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ﴿١٦﴾

مخکښې | دورځې دحساب نه |

نه مخکې مونږ ته زمونږ (دعذاب) حصه راکړه

**قوله تعالی:: كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ**

**دکافرانو په خندا باندې صبر کوئ:** ددې تېرولوخبرې څوځله بیان شوی دی چه څنګه په هغوی باندې دهغوی د ګناهونو په وجه باندې دالله تعالی عذاب راغې.هم داهغه لشکرې دی چه هغوی په مال اولاد ،طاقت اوقوت،زوراوزمکه کښې دستادزمانې دهغه نوروکافرانونه ډیرزیات وو.خودالله تعالی دحکم نه پس د هغوی هیڅ څیزپه کاررانغلو.بیادهغوی دتباهئ وجه بیان کړې ده چه هغوی درسولانودښمنان وو، هغوی ته به ئې دروغژن وئیل.هغوی ته صرف شپیلې انتظاردې اوپه دې کښې هم څه ناوخته نه دې. بس دغه به یواوازوی چه دچاغوږونوته اورسیدو،بې هوشه اوبې ساه به وی.دهغه خلقونه علاوه کوم چه الله تعالی ترې نه ساتلی دی.د ،،قط،، معنی دکتاب اوحصې ده.دمشرکانودبیوقوفئ اودهغوی دعذابونو نه منلوپه وجه باندې دهغه دغوښتلوذکردې.څنګه چه په بل ایت کښی دی چه هغوی اووئیل چه اې الله!که داصحیح ده نوپه مونږباندې داسمان نه کانړی اووروه.یابل څه دردناك اسمانی عذاب راوله.اوداهم وئیلی شوی دی چه هغوی دخپل جنت حصه دلته اوغوښتله.اوچه څه ورته وئیلی شوی دی دوی به هغه دروغ ګڼړل.دابن جریر رحمه الله قول دې.چه دکوم خیراوشرهغوی په دنیاکښې مستحق ووهغه هغوی زراوغوښتل.هم دغه خبره صحیح ده.([1])دضحاك اواسماعیل بن ابی خالد دتفسیرحاصل هم دغه دې. والله اعلم.نوالله تعالی دهغوی دخنداودروغ ګڼړلوپه بدله کښې خپل نبی ﷺ ته صبرکولوتلقین کړې دې.

اِصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ

| صبر کوه (اے نبی) | په هغه خبرو باندې | چې وائی ئې دوئ |

| ته ددوئ په دې خبرو صبر کوه

وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوٗدَ ذَا الْاَيْدِ اِنَّهٗٓ اَوَّابٌ ﴿١٧﴾

اوبیان کړه | قیصه دبنده زمونږه | داؤد | چې مالك ووډلویو قوتونو | بیشکه هغه | رجوع کونکې وو

اوزمونږ بنده داؤد یاد کړه | چې ډیرد طاقت خاوند وو | او الله ﷻ طرف ته زیات رجوع کونکې وو

---

[1] الطبری :٢١/١٦٥.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْعَشِيِّ | يُسَبِّحْنَ | مَعَهُ | الْجِبَالَ | إِنَّا سَخَّرْنَا |
| په آخر دورځې (بيګاه) كښې | چې تسبيح به ئې وئيله | دهغه سره | غرونه | بيشكه تابع كړې وو مونږه |

مونږ غرونه تابع كړې وو چې سحر ماښام به ئې دهغه سره تسبيح وئيل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَوَّابٌ ۝ | لَهُ | كُلٌّ | مَحْشُورَةً ؕ | وَالطَّيْرَ | وَالْإِشْرَاقِ ۝ |
| رجوع كونكى وو | هغه ته | او ټول به | جمع كړې شوي | او مارغان | او په اول دورځې (صبا) كښې |

اومارغان به هم دهٔ سره جمع كيدل او تسبيح به ئې وئيل دا ټول دده دفرمان تابع وو ......................

| | | | |
|---|---|---|---|
| الْحِكْمَةَ | وَآتَيْنَاهُ | مُلْكَهُ | وَشَدَدْنَا |
| حكمت | او وركړې وو مونږ هغه ته | حكومت دهغه | او مضبوط كړې وو مونږه |

او مونږ دده حكومت ډير مضبوط كړې وو او مونږ دهٔ ته نبوت او د خبرو پوهه وركړې وه

| | |
|---|---|
| الْخِطَابِ ۝ | وَفَصْلَ |
| دخبرو | او پوهه |

**قوله تعالى: وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُدَ ذَا الْأَيْدِ**

**حضرت داؤد ؑ باندې دالله تعالى احسانونه او ايد تفسير:** (ذاالايد) نه مرادعلمى اوعمل والاقوت دې اوصرف دقوت معنى ئې هم وى. څنګه چه فرمانيلي دى. ﴿ وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ ﴾ مجاهد رحمه الله فرمائى د قوت نه مرادطاقت فى الاطاعة دې (١). حضرت قتاده فرمائى چې حضرت داؤد ؑ ته دعبادت قوت اوداسلام فقه وركړې شوې وه (٢). داهم روايت شوى دى چه داؤد ؑ به شپې دريمې حصې پورې تهجدوكښې ولاړوو، اويوه ورځ پس به ئې روژه نيوله. دبخارى اومسلم په حديث كښې دى چه دالله تعالى دټولونه دحضرت داؤد ؑ دشپې عبادت اوورځې روژې خوښې وې. داؤد ؑ به نيمه شپه اوده اودريمه حصه به ئې عبادت كولواوشپږمه حصه كښې به بياوده شو. اويوه ورځ به ئې روژه وه اويله نه. اوددين دښمنانوسره به ئې جهادكښې تيخته نه كوله. (٣) اوپه خپل هرحالت كښې دالله تعالى طرف ته رجوع كوله. هغوى غرونه هم سركړې وو. داؤد ؑ به دنمراختووخت كښې دورځې په اخرى وخت كښې دالله تعالى تسبيح بيانوله. څنګه چه فرمانيلي دى. ﴿ يَاجِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ ﴾ يعنى الله تعالى غرونو ته دهغه سره رجوع كولوحكم كړې وو. دغه شان به مرغودهغه اوازاوريدوسره دهغه سره سره به ئې الله تعالى پاكى بيانوله. كه الوتونكې مرغې دهغه سره تيريدې اوهغه به تورات وئيلونوهغوى به هم الوتل پريخودل اوداؤد ؑ سره به په تلاوت كښې مشغول شوې.

**داشراق او څاښتې مونځ فضيلت:** حضور ﷺ دمكې فتح كولوپه ورځ دغڼې اختريه ورځ يعنى داشراق په وخت كښې حضرت ام هانى رضي الله عنها په كوركښې اته ركعته مونځ اوكړو. ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه دغه هم مونځ وخت دې. څنګه چه فرمانيلي دى. ﴿ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ۝ ﴾

عبدالله بن حارث بن نوفل وائى چه عبدالله بن عباس رضي الله عنه به دضحى مونځ نه كولو. يوه ورځ ماهغه دام هانى رضي الله عنها كورته بوتلواوورته مې اووئيل چه ده ته هغه حديث بيان كړه كوم چه تاسوماته بيان كړې

---

(١) الطبرى : ١٦٦/٢١.

(٢) الطبرى : ١٦٧/٢١.

(٣) صحيح بخارى كتاب التهجد باب من نام عند لسحر: ١١٣١. صحيح مسلم: ١١٥٩.

وو،نوموړصاحبې اوفرمائيل. دمکې په ورځ باندې حضورﷺ زماکورته تشريف راوړو ، او د راتلونه پس نې راباندې يولوخى کښى اوبه واچولې،اودکپړې يوه پرده ئې جوړه کړه اواوئې لامبل،دهغې نه پس دکوريوطرف ته ئې اوبه واړولې اواته رکعته صلوٰة الضحى ئې اداکړل.په دې کښى قيام، رکوع، سجده،جلوس ټول تقريبابرابروو،حضرت ابن عباسؓ داحديث اوريدلوسره چه کله هغه ځائې نه رااوتلو،نواوئې فرمائيل.ټول قران مااولوستلوخوماته پته نه وه چه دضحى مونځ هم څه څيزدې؟نن راته معلومه شوه چه ﴿يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ﴾ ايت کښى داشراق نه مرادهم داضحى وو.نودهغې نه پس هغه دخپل مخکښى قول ته رجوع اوکړه (۱).اومرغې به هم په هواکښى اودريدې اوحضرت داؤدؑ سره به ئې دهغه په تسبيح کښى ملګرتياکوله.

**قوله تعالى:: وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ**

**دباطنى قوت سره ظاهرى قوت هم ، يوه عجيبه واقعه:**:اودهغه سلطنت مونږمضبوط کړې وو. بادشاهانو ته چه دکوم کوم څيزضرورت وى هغه ټول ورته مونږورکړې وو،څلورزره خودهغه محافظان وو. څلويښت زره کسان به هروخت دهغه په حفاظت کښى داسلحې سره ولاړوو.په يوروايت کښى دى چه دهغه په زمانه کښى ددوو بنى اسرائيلوپه مينځ کښى جهګړه اوشوه،يووئيل چه ده زماغواه پټه کړې ده.دويم ددې جرم نه انکارکولو.حضرت داؤدؑ ددعوه کونکى نه ګواه اوغوښتله خوهغه ګواه نه رانه وستلې شوه.داؤدؑ دشپې په خوب کښى اوليدل چه دعوه کونکې قتل کړه.سحرداؤدؑ حکم اوکړو چه دعوه کونکې قتل کړئ،هغه اووئيل چه اې دالله نبى!ته هم زمادقتل کولوحکم کوې.حالانکه ده زماغوه پټه کړې ده.داؤدؑ اوفرمائيل چه دازمانه بلکه دالله تعالى حکم دې،اودامـمکن نه ده چه اونه منلې شى،نوته تيارشه.بياهغه اووئيل چه اې دالله نبى!زه په خپله دعوه کښى رښتونې يم چه زماغواه پټه شوې ده خوالله تعالى زمادقتل کولوحکم په دې وجه باندې نه دې کړې بلکه زمادقتل وجه بل څه ده اودهغې صرف ماته پته ده.خبره داده چه بيګاه مادغه کس دهوکې سره قتل کړې دې چه دهغې پته چاته نشته.نودهغې په بدله کښى الله تعالى تاسوته دقصاص حکم کړې دې.نوهغه قتل کړې شو.اوس دحضرت داؤدؑ ويره دهرکس په زړه کښى کيناستله.مونږهغه ته حکمت ورکړې وو.عقل اوذهن، انصاف اوفراست،دالله کتاب اودنبيانواتباع نبوت اورسالت اوجهګړوحل کول،يعنى ګواه اخستل،قسم ورکول ،ددعوه کونکى په ذمه باندې ثبوت پيداکول،دعوه شوى کس ته قسم ورکول.(۲)هم دغه طريقه دنبيانواودنيک خلقودفيصلې کولو،اودغه طريقه په دې امت کښى هم ده.نوحضرت داؤدؑ به دخبرې تل ته رسيدواودحق اوباطل،رښتيااودروغواودصحيح اوغلط پته به ئې اولږوله.کلام به هم دهغه صفا وواوحکم به ئې هم دانصاف مطابق وو.حضرت داؤدؑ **دامابعد** وئيل ايجادکړى وو.اودفصل الخطاب نه هم دې طرف ته اشاره ده.

| إِذْ | نَبَؤُا الْخَصْمِ | وَهَلْ أَتٰكَ |
|---|---|---|
| کله چې | خبر دجګړه کونکو | او آيا راغلې دې تاته |
| هرکله چې | او(ائې پيغمبره)آيا تا ته دهغه جګړه کونکې واقعه معلومه ده | |

(۱) الطبرى :۱۶۹/۲۱. حاکم:۵۳/۴.

(۲) الطبرى :۱۷۲/۲۱.

تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ﴿٢١﴾ إِذْ دَخَلُوا عَلَىٰ دَاوُدَ
وراوختل هغوئ په ديوال | بالاخاني ته | كله چي ورننوتل هغوئ | په داود باندي |
هغوئ په ديوال راواوړيدل | او عبادت خاني ته داخل شول | څه وخت چي داؤد ته ورغلل

فَفَزِعَ مِنْهُمْ قَالُوا لَا تَخَفْ خَصْمَانِ بَغَىٰ
نو اويريدو | دهغوئ نه | نواوونيل هغوئ | مه يريږه ته | دوه جګړه كونكي يو | زياتي كړي دي |
نودي دهغوی نه اوويريدو | هغوئ ورته اوونيل چي مه ويريږه | مونږ دوه فريقه يو | په

بَعْضُنَا عَلَىٰ بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ
يو زمونږه | په بل باندي | پس فيصله اوكړه | په منځ زمونږ كښي | په حقه سره |
معامله كښي اختلاف راغلي دي | نوزمونږ په مينځ كښي د انصاف فيصله اوكړه

وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَا إِلَىٰ سَوَاءِ الصِّرَاطِ ﴿٢٢﴾ إِنَّ هَٰذَا
اومه كوه بي انصافي | اولاربنودنه اوكړه زمونږه | نيغي لاري ته | بيشكه دا
او بي انصافي مه كوه | اومونږ ته سمه لاره اوښايه | ..................دا سړي زما رور دي

أَخِي لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً وَلِيَ نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ
رور زما دي | دۀ لره | نهه | او نوي | ګډي دي | او زما | ګډه يوه ده |
دۀ سره يو كم سل ګډې دی | ...................اوماسره صرف يوه ګډه ده |

فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ ﴿٢٣﴾ قَالَ
پس دۀ اوونيل (ماته) | راكړه ماته دغه (يوه هم) | او غالب شو په ما | په خبرو كښي | اوونيل داود
نودي ماته وائي | چي دغه يوه هم ماته راكړه | او په خبرو كښي را باندي ډير غالب دي | داؤد عليه السلام

لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ ۖ وَإِنَّ كَثِيرًا
بيشكه ظلم اوكړو دۀ په تا | په غوښتلو سره | دګډې ستا | ګډو خپلو ته | او بيشكه | ډير |
ورته اوونيل | چي ستا ګډه په خپله ګډو كښي يو ځائي كول غواړي | نو دا واقعي په تا زياتي

مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ إِلَّا الَّذِينَ
دشريكانونه | خامخا زياتي كوی | ځيني دهغوئ | په ځينو باندي | ماسوا دهغه كسانونه |
كوی | او (همدغسي) زيات شريكان په يو بل باندي زياتي كوی | .............خوكومو خلقوچي

آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ۗ
چي هغوئ ايمان راوړو | او عملونه ئې اوكړل | نيك | او لږ دي دوئ (يعني دغسي خلق) |
ايمان راوړی | او نيک عملونه كوی (هغوئ زياتي نه كوی) | اوداسي خلق ډير لږ دي

وَظَنَّ دَاوٗدُ اَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ

او پوهه شو داود | چې بیشکه | دا خو په آزمیښت کښې واچوؤ مونږ هغه | پس هغه ښښانه اوغوښتله

او داؤد ﷺ دا خیال اوکړو | چې مونږ د هغه امتحان اخستې دې | نو خپل رب ته ئې توبه

رَبَّهٗ وَخَرَّ رَاكِعًا وَّاَنَابَ ﴿٢٤﴾ فَغَفَرْنَا لَهٗ

درب خپل نه | او پریوتو | رکوع کونکې | او رجوع ني اوکړه | پس معاف کړو مونږ | هغه ته |

اوویستله | او په سجده پریوتلو | اوالله ﷻ ته یې رجوع اوکړه | نو مونږ ددغې خبرې معافی اوکړه

ذٰلِكَ ط وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿٢٥﴾

دغه (قصور) | او بیشکه | هغه لره دې | زمونږ سره | خامخا نزدې مقام | او ښه ځائې دورتلو |

او د هغه دپاره زمونږ په نیز اوچت مقام دې | ..............اوانجام ئې ډیر ښه دې

قوله‌تعالى:: وَهَلْ اَتٰىكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ

**دحضرت داؤدﷺ مشهوره فیصله اودې کښې اسرائیلی خبرې:** مفسرینودلته یوه قصه بیان کړې ده خو ددې زیاته حصه دبنی اسرائیلودروایتونونه اخستلې شوې ده.دحدیث نه ثابت نه ده.ابن ابی حاتم کښې یو حدیث دې خوهغه هم ثابت نه دې خکه چه دهغې روایت کونکې یویزیدرقاشی دې.اګرچه هغه ډیر نیك کس وو خوضعیف دې.نوښه داده چه په قران کښې څه دی اوپه څه باندې مشتمل دې هغه حق دی.

دحضرت داؤدﷺ هغه لیدوسره ویریدل په دې وجه باندې ووچه هغه دخپل یواځې والی په خاص کمره کښې وو،اوپهره دارنې منع کړی ووچه نن څوك دننه رانشی،یوناساپه ئې چه دوی دواړه اولیدل نو ویریدو.

(عزنی) نه مطلب په خبروکښی غالب راتلل دی،په بل باندې حاوی کیدل حضرت داؤدﷺ پوه شوچه دادالله تعالی ازمیښت دې،نوهغه په رکوع اوسجده کښی الله تعالی نه ښکته شو.ذکرشوی دی چه څلوېښت ورځې هغه دسجدې نه سرنه وواوچت کړې.نومونږهغه اوبخلو.داخبره یادساتل پکاردی چه کوم کارونه دعوامودپاره دنیکووی هغه کارونه دخاص خلقودپاره کله ناکله دبدوجوړشی.داایت د سجدې دې اوکه نه دې؟

ددې باره کښی دامام شافعی رحمه الله مذهب خوداوائی چه دلته سجده ضروری نه ده. دا خو د شکر سجده ده.دابن عباس رضی الله عنه قول دې چه (ص) سجده په ضروری سجدوکښی نه ده.اومارسول الله ﷺ دلته په سجده کولو باندې لیدلې دې[1].(بخاری وغیره)

نسائی کښی دی چه حضورﷺ سجده کولونه پس اوفرمائیل چه داسجده دداؤدﷺ دتوبې سجده وه اوزمونږدپاره دشکرسجده ده[2].ترمذی کښی دی چه یوکس اوونیل یارسول الله ﷺ ماخوب کښی اولیدل چه دیوې ونې شاته مونځ کوم،اوپه مونځ کښی مادسجدې دایت تلاوت اوکړواوسجده مې اوکړه نوزماسره هغه ونې هم سجده اوکړه اوماواوریدل چه هغه دادعاغواړی.(اللهم اكتب لی بهاعندك اجراواجعلهالی عندك ذخراوضع بهاعنی وزراواقبلهامنی كماقبلتهامن عبدك داود)یعنی اې الله! زما سجده دځان سره زمادپاره داجراوخزانې سبب جوړه کړه اوپه دې باندې زمابوجه کم کړه،اودازمانه قبوله کړه.څنګه چه تادخپل بنده داؤدﷺ نه دې قبوله کړې وه.ابن عباس رضی الله عنه فرمائی بیامااولیدل چه حضورﷺ په ولاړه باندې مونځ

---

[1]) صحیح بخاری کتاب سجود القرآن باب سجدة صاد: ۱۰۶۹. ابن حبان : ۲۷۶۶.

[2]) لسائی کتاب الافتتاح باب سجود القرآن السجود: ۱۱ ل صاد: ۹۵۸. وسنده صحیح.

اوکړواودسجدې ایت نه پس نې سجده اوکړه اوپه دې سجده کښې نې هم هغه دعااوکړه کومه دعاچه هغه کس دونې نه نقل کړې وه.([1])ابن عباس رضی الله عنه په دې ایت باندې دسجدې دادلیل ورکوی چه قران حکیم ونیلی دی،دهغه په اولادکښې داؤد علیه السلام اوسلیمان علیه السلام دی چه هغوی ته مونږ هدایت اوکړو.نوته اې نبی!دهغوی هدایت اومنه.نوحضور صلی الله علیه وسلم دهغوی په اقتداباندې مامور وو، او دا ښکاره ثابت ده چه حضرت داؤد علیه السلام سجده کړې وه اوحضور صلی الله علیه وسلم هم داسجده کړې ده.([2])

دحضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه بیان دې چه ماپه خوب کښې اولیدل چه لکه سوره (ص)لیکم.چه کله دسجدې ایت ته اورسیدم نومااولیدل چه قلم اودوات اوزماسره خوا کښې هریوڅیزسجده اوکړه.هغوی داخپل خوب حضور صلی الله علیه وسلم ته بیان کړو.دهغې نه پس به حضور صلی الله علیه وسلم ددې ایت دتلاوت په وخت کښې سجده کوله ([3]).(احمد)

ابوداؤدکښې دی چه حضور صلی الله علیه وسلم په منبرباندې سوره ص اولوستلو،اودسجدې ایت ته رسیدلوسره دمنبرنه کوزشواوسجده نې اوکړه،اودحضور صلی الله علیه وسلم سره نوروخلقوهم سجده اوکړه.یوبل ځل حضور صلی الله علیه وسلم هم ددې سورت تلاوت اوکړو،چه کله دسجدې ایت ته اورسیدونوخلقودسجدې تیاری اوکړه، حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه داخودیونبی دتوبې سجده وه.اوزه وینم چه تاسودسجدې دپاره تیارشوې نې.نوحضور صلی الله علیه وسلم راکوز شو او سجده نې اوکړه.([4])

**قوله تعالى:: وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا**

**قیامت کښې د داؤد علیه السلام مرتبهٔ::** الله تعالی فرمائی مونږهغه اوبخلو.دقیامت په ورځ به دهغه ډیر قدر او لوی مقام وی اوهغه به دنبیانواوعادلانودرجه مونده کړی.حدیث کښې دی چه عادل خلق به دنورپه منبر باندې رحمن سره ښی طرف ته وی.دالله تعالی دواړه لاسونه ښی دی.داعادل خلق هغوی دی چه دخاخپل خپلوان چه دهغوی دوی مالکان وی عدل اوانصاف کوی،([5])اوپه حدیث کښې دی چه دټولونه زیات دالله تعالی دوستان اودهغه سره نزدې به هغه بادشاهان وی کوم چه انصاف کونکی وی اودټولونه سخت دښمن اوعذاب به نې په هغه وی څوك چه ظالم حکمران وی.(ترمذی وغیره)

حضرت مالك بن دینار رحمه الله فرمائی چه دقیامت په ورځ باندې به حضرت داؤد علیه السلام دعرش خپې سره اودرولې شی اوالله تعالی به حکم اوکړی ای داؤد!اچه په کوم خوږدردناك،خائسته اوازسره به تا زما تعریفونه په دنیاکښې کول،اوس هم اوکړه.داؤد علیه السلام به اوفرمائی ای الله تعالی!اوس هغه اوازکوم دې؟ الله تعالی به اوفرمائی ماتاته هغه اوازدرکړو.اوس به داؤد علیه السلام په خپل خائسته اوازسره دوجدپه حالت کښې دالله تعالی حمداوثناء بیان کړی.چه هغه اوریدوسره به جنتیان نورنعمتونه هیرکړی اوداخائسته اوازاونورانی مرئ به دهغوی توجه دنوروںعمتونونه لرې کړی اوخپل ځان طرف ته به نې متوجه کړی.

| بَيْنَ النَّاسِ | فَاحْكُمْ | فِي الْأَرْضِ | خَلِيفَةً | إِنَّا جَعَلْنَاكَ | يَا دَاوُودُ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| په منځ دخلقو کښې | پس حکومت کوه | په زمکه کښې | خلیفه | بیشکه جوړ کړې مونږ ته | اے داود |
| په مینځ کښې په انصاف سره | نود خلقو | | حاکم جوړکړې یې | مونږ ته په زمکه کښې | ائې داوده |

---

[1] ترمذی کتاب الدعوات باب مایقول فی سجود القرآن : ٣٤٢٤. وسنده حسن.
[2] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة صاد: ٤٨٠٧.
[3] احمد:٧٨/٣..
[4] ابوداود کتاب سجود القرآن باب السجود فی صاد: ١٤١٠. وهوحسن .
[5] ترمذی کتاب الاحکام باب ماجاء فی الامام العادل : ١٣٢٩.



| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْحَقِّ | وَلَا تَتَّبِعِ | الْهَوٰى | فَيُضِلَّكَ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ط |
| به حقه سره | اومه کوه پیروي | دخواهشاتو | پس بې لارې به کړي تا | دلارې دالله نه |

فیصلې کوه او دخپلو خواهشاتو تابعداري مکوه کنې دالله ﷻ دلارې نه به دې بې لارې کړي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | يَضِلُّوْنَ | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | لَهُمْ | عَذَابٌ شَدِيْدٌ |
| بیشکه هغه کسان | چې بې لارې کیږي | دلارې دالله نه | دپاره دهغوی | عذاب سخت دی |

خوک چې دالله ﷻ دلارې نه بې لارې شي نو هغه دپاره سخت عذاب مقرر دې

| | | |
|---|---|---|
| بِمَا | نَسُوْا | يَوْمَ الْحِسَابِ ۝ ع |
| په سبب دهغې | چې هیره کړه هغوي | ورځ دحساب |

خکه چې د حساب ورځ ئې هیره کړې ده

**قوله تعالی:: فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ**

**بادشاهان دالله تعالی دحکم پابندی:** دې ایت کښې بادشاهانو او اختیارمندوخلقوته حکم شوې دې چه هغوی دې دعدل او انصاف سره دحدیث او قران مطابق فیصلې کوی گنې هغوی به دالله تعالی دلارې نه ورك شي.اوچه څوك ورك شي اودحساب ورځ ترې هیره شي هغه به په سخت عذابونوکښې اخته کړې شي.دحضرت ابوزرعه رحمه الله نه دوخت بادشاه ولیدبن عبدالملك یوځل تپوس اوکړوچه دوخت خلیفه نه به هم الله تعالی حساب اخلي؟هغه ورته اوفرمائیل ربنتیااووایم اخلیفه ورته اووئیل بالکل ربنتیااووایه،اوتاسوته هرقسمه امن دې.اونې فرمائیل اې امیرالمومنین الله تعالی ته دټولونه نزدې درجه دحضرت داؤد عليه السلام وه اوهغه ته دخلافت سره الله تعالی نبوت ورکړې وو،ددې نه پس هم دالله تعالی کتاب هغه ته وائی ﴿ يٰدَاوٗدُ اِنَّا ﴾ عکرمه رحمه الله فرمائي مطلب دادې چه دهغه دپاره دهغه د هیریدو په وجه باندې دحساب په ورځ سخت عذاب دې.([1]) سدی رحمه الله وائی چه دهغه دپاره دحساب په ورځ سخت عذاب په دې وجه باندې دې چه هغه دحساب دورځ دپاره عملونه نه دی جمع کړې.([2])دا ایت دالفاظونه داقول ډیر صحیح ښکاري. والله اعلم.

| | | |
|---|---|---|
| | وَمَا خَلَقْنَا | السَّمَآءَ |
| | اونه دی پیدا کړې مونږه | اسمان |

او مونږ اسمان او زمکه او ددې دواړو په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْاَرْضَ | وَمَا بَيْنَهُمَا | بَاطِلًا ط | ذٰلِكَ | ظَنُّ | الَّذِيْنَ |
| او زمکه | او هغه چې په منځ ددې دواړو کښې دی | عبث (فضول) | دا | گمان دی | دهغه کسانو |

مینځ کښې چې څه دی بې مقصده نه دی پیدا کړې ..................... دا خو د کافرانو خلقو گمان دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَفَرُوْا ج | فَوَيْلٌ | لِّلَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | مِنَ النَّارِ ۝ ط |
| چې کفر ئې کړې دې | پس تباهي ده | دپاره دهغه کسانو | چې کفر ئې اوکړو | داور نه |

..................... نو کافرانو دپاره لوئي هلاکت دې چې ددوزخ اور دې

---

[1] ) الطبری : ۱۸۹/۲۱.
[2] ) الطبری : ۱۸۹/۲۱.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَمۡ نَجۡعَلُ | الَّذِيۡنَ | اٰمَنُوۡا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | كَالۡمُفۡسِدِيۡنَ |
| يا اوگرځوو مونږ \| هغه كسان \| چې ايمان راوړى \| او عمل اوكړى نيك \| پشان دفساد كونكو | | | | |
| آيا مونږ به د ايمان خاوندان او نيک عمله خلق د هغه چاسره برابر گرځووا \| چې په زمكه كښې | | | | |
| فِى الۡاَرۡضِ | اَمۡ نَجۡعَلُ | الۡمُتَّقِيۡنَ | كَالۡفُجَّارِ ۝ | كِتٰبٌ |
| په زمكه كښى \| يا اوگوځوو مونږه \| پرهيزگاران خلق \| پشان دفاجرانو (بدكارانو) \| كتاب \| | | | | |
| فسادونه خوروى \| آيا مونږ به پرهيزگاران دبدكارونو پشان كووا \|.................. دا (قران يو) بركتى | | | | |
| اَنۡزَلۡنٰهُ | اِلَيۡكَ | مُبٰرَكٌ | لِّيَدَّبَّرُوۡۤا | اٰيٰتِهٖ |
| چې نازل كړي دي مونږ هغه \| تاته \| بركتناك دې \| دپاره ددې چې غور اوكړى خلق \| په آيتونو ددې | | | | |
| بركتى كتاب دې \| چې مونږ تاته د دې دپاره نازل كړې دې \| چې دوئ ددې په آيتونو كښې فكر اوكړى | | | | |
| وَلِيَتَذَكَّرَ | اُولُوا الۡاَلۡبَابِ ۝ | | | |
| او دپاره ددې چې نصيحت قبول كړى \| خاوندان دعقل \| | | | | |
| اوعقل مند ترې نصيحت قبول كړى \| | | | | |

**قوله تعالى:: وَمَا خَلَقۡنَا السَّمَآءَ وَالۡاَرۡضَ**

**الله تعالى يوځيزهم بې كاره نه دې جوړ كړى دى**:ددې چه دانسان پيداكول عبث اوبې كاره نه دى،دوى ټول د الله تعالى دعبادت دپاره پيداكړې شوى دى. بيايو وخت راتلونكې چه منونكوته به اوچت والې وركړې شى اونه منلووالاته به سخت سزاوركړې شى. دكافرانو خيال دې چه مونږدوى هم دغه شان پيداكړى دى اوداخرت اوبل ژوندځه ځيزنه دې.دوى غلط دى.دې كافرانوته به دقيامت په ورځ ډيرسختې وى.ځكه چه په هغه اوركښى به دوى سوزى كوم چه ددوى الله په فرښتوباندې بل كړې دې. داناممكن اونه كيدووالاخبره ده چه مومن اومفسداوپرهيزگاراوبدكاريوشان كړى.اوكه قيامت نه راځى نوبيا دوى دواړه دانجام په لحاظ باندې يوشان دى.اود انصاف خلاف ده.قيامت به ضروروراځى،نيك خلق به جنت كښى داخل شى اوگناهگاران به دوزخ ته لاړشى.نوعقل هم داخرت ثبوت غواړى .مونږ وينو چه يوظالم گناهگاردالله تعالى ددرنه شړلې شوې په دنياكښى خوشحاله،مال اولاداوصحت هرڅه دهغه سره شته او يومومن متقى پاكدامن ديپيسې دپاره تنگ اويويوارام نه لرې دې.نودحكمت اوعلم اوانصاف والاپادشاه نه هم دغه طمع پكارده چه يووخت داسې هم راشى چه ددغه نمك حرام نه دغه ټول مال اودولت واخستلې شى اودې مومن اوصبركونكى كس ته ئې وركړى،اوهم دغه د اخرت په دار كښې كيږ ى.نوثابته شوه چه ددې جهان نه پس به يوبل جهان ضروروراځى. ځكه چه داتعليم دقران پاك نه حاصل شوې دې اوددې نيكئ خودلووالاهغه دې،په دې وجه دهغې نه پس ارشادشوې دې چه دا مبارك كتاب مونږستاسوطرف ته نازل كړې دې چه خلق دااوپيژنى اودعقل والاخلق ددې نه نصيحت حاصل كړى.حضرت حسن بصرى رحمه الله فرمائى چه چادقران لفظونه حفظ كړل اوپه قران باندې ئې عمل اونه كړو.هغه په قران كښى سوچ اوفكرهم اونه كړ.خلق وائى چه مونږټول قران اوونيلو.خودقران يونصيحت يادقران دحكم يوه نمونه هم په هغه كښى نه ښكارى.داسې نه دى پكار.اصل ځيزسوچ اوفكر او نصيحت اوعبرت حاصلول دى.

| |
|---|
| وَوَهَبْنَا لِدَاوٗدَ |
| \| اوورکړه مونږه \| داود ته \| |
| او مونږ داوٗد ﷺ ته (د هغه خوئي) |
| سُلَيْمٰنَ ۚ نِعْمَ الْعَبْدُ ۚ اِنَّهٗ اَوَّابٌ ۞ اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ |
| سليمان \| ښۀ بنده \| بیشکه هغه رجوع کونکي دي \| کله چي \| پیش کړې شو \| هغه ته \| |
| سلیمان ﷺ ورکړې وو \| ډیر ښۀ بنده وو \| او (الله ﷻ) ته ډیر رجوع کونکي وو \| هغه وخت یاد کړه چي |
| بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ ۞ فَقَالَ اِنِّيْٓ اَحْبَبْتُ |
| په اخرد ورخ (مابنام) کښې \| په درې خپو ولاړ (اصل) \| اسونه \| نو هغه اووئیل \| بیشکه خوښ کړو ما |
| په مابنام کښې هغه ته اصیل ښۀ اسونه پیش کړې شول \| نو هغه اووئیل چي زه د مال په محبت کښې |
| حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ ۚ حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ۞ |
| محبت د مال (اسونو) \| په وجه د یادولو درب زما \| تر دې پورې \| چي پټ شو (اسونه) \| په پردو کښې |
| د خپل رب د یادولو نه غافله پاتې شوم \| تر دې چي نمر (د مغرب) په پرده کښې پټ شو |
| رُدُّوْهَا عَلَيَّ ۚ فَطَفِقَ مَسْحًاۢ بِالسُّوْقِ |
| واپس راولئ دغه اسونه \| ماته \| پس شروع اوکړه هغه \| په وهلو دلاسونو \| په پنډو (باندې) \| |
| دا (اسونه) خو لږ رااواپس کړئ \| او هغه د هغوئ په پنډو او څټونو وهلو شروع اوکړه |
| وَالْاَعْنَاقِ ۞ |
| او په څټونو (باندې) \| |

قوله تعالیٰ: وَوَهَبْنَا لِدَاوٗدَ سُلَيْمٰنَ ۚ

دحضرت سليمان ﷺ واقعه: الله تعالى يوه ډيرلوې نعمت حضرت داوٗد ﷺ ته ورکړې وو، دهغه ذکر کيږي چه دهغه دنبوت وارث مودهغه خوئې حضرت سليمان ﷺ کړو. په دې وجه باندې صرف دحضرت سليمان ﷺ ذکرشوې دې ګنى دهغه نور اولادهم وو. سل ښځې دهغه وينزې وې. نوپه بل ايت کښې دي. (وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ) د(حضرت) داوٗد وارث (حضرت) سليمان شو، يعنى دهغه نه پس نبوت ده ته ملاؤشو. دې هم ډيرښه بنده وو. يعنى پخپله عبادت کونکې اودالله طرف ته ښکته کيدو والا وو.

داوٗد ﷺ نه سوالات اودهغوئ ﷺ جوابات: مکحول رحمه الله وائى چه جناب داوٗد ﷺ نبى يوځل دده نه يو څو سوالونه اوکړل اودهغې صحيح جوابونه ملاويدونه پس نې اوفرمائيل چه دې دالله تعالى نبى دې. تپوس نې اوکړوچه دټولونه خائسته څيزڅه دې؟جواب نې ورکړوچه دالله تعالى دطرف نه سکون او ايمان. بيائې ترې تپوس اوکړوچه دټولونه خراب څيزڅه دې؟سليمان ﷺ عرض اوکړوچه دايمان نه پس کفر. بيائې تپوس اوکړوچه دټولونه خوږڅيزڅه دې؟عرض نې اوکړود الله تعالى رحمت. بيائې ترې تپوس اوکړودټولونه زيات يخ والى والاڅيزڅه دې؟جواب نې ورکړود الله تعالى دخلقومعاف کول. اودخلقويوبل معاف کول. (ابن ابى حاتم) حضرت سليمان ﷺ ته دهغه دبادشاهئ په زمانه کښې اسونه پيش کړې شول چه هغه ډيرزيات تيزرفتاره وو ، او په درې خپوبه ولاړوواويوه خپه به نې هسې

په زمکه باندې لړولې وه.(¹)يوداهم ده چه دا دوزرووالا اسونه وواوتعدادئې شل وو.ابراهيم تيمي داسونوتعدادشل زره خودلې دې.والله اعلم.

ابوداؤدكښي دي چه حضورﷺ دتبوك يادخيبردسفرنه واپس راغلواوپه كوركښي وو،دتيزې هواپه وجه باندې دكوردپردې يوه حصه اوخوزيده.هلته دحضرت عائشه دلوبوګوډئ پرتې وې.حضورﷺ هم اوليدلې ،تپوس ئې اوكړوداڅه دي؟حضرت عائشهؓ جواب وركړوچه دازماګوډيانې دي.حضورﷺ اوليدل چه په مينځ كښې يواس شان جوړشوې دې،چه دهغې دكپړې نه جوړې شوې دوه وزرې هم دي. تپوس ئې اوكړوداڅه دي؟اوئې فرمائيل اس دې.اوئې فرمائيل اوددې دكپړې نه څه جوړكړې دي؟اوئې فرمائيل داددې وزرې دي،اوئې فرمائيل اس هم خانسته دې اوددې وزرې هم.صديقهؓ عرض اوكړوچه تاسونه دي اوريدلي چه دحضرت سليمانؑ دوزرووالااسونه وو؟دې اوريدوسره حضورﷺ په خنداشوتردې چه دحضورﷺ اخرى غابښونه هم ښكاره شول.(²)

**قوله تعالى:: حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ**

**د سليمانؑ او د نبى كريمﷺ د مازيګر مونځ قضا كيدل::** حضرت سليمانؑ هغې په كتلوباندې داسې مشغول شوچه دهغه دمازيګرمونځ پاتې شو.بالكل هم دغه شان څنګه چه دخندق په غزوه كښې يو ځل حضورﷺ په جنګ كښې داسې مشغول ووچه دمازيګرمونځ ئې ادانه كړې شواودمابنام نه پس ئې اداكړو.نوپه بخارى اومسلم كښې دي چه دنمرپريوتونه پس حضرت عمرؓ كافرانوته خيرې كولې او حضورﷺ ته راغلوچه حضوراماخودمازيګرمونځ هم نه دې كړې.حضورﷺ اوفرمائيل ماهم تراوسه پورې نه دې اداكړې.نوهغوى بطحان ته لاړل اوهلته ئې اودس اوكړو اودنمرغورځيدونه پس ئې د مازيګرمونځ اوكړواوبيائې دمابنام مونځ اوكړو(³).داهم كيديشي چه دسليمانؑ په دين كښې د جنګ په وجه باندې مونځ كښې ناوخته كول جائزوى اوداجنګي اسونه ووكوم چه هم دغه مقصدپاره ساتلى شوى وو.

**دجنګ په وخت كښې د مونځ حكم::** نوڅه عالمانوداهم وئيلي دي چه دصلوة خوف دشروع كيدونه مخكښې هم دغه حالت وو.بعضې وائي چه كله تورې راويستلې شوې وى اولشكررامخكښې شوې وى اودمونځ دپاره دسجدې اوركوع امكان نه وى نوبيادغه حكم دې.كوم چه صحابه كرامو د تستر دفتح كولوپه وخت كښې كړې وو (⁴). خو زمونږ رومبې قول صحيح دې څكه چه دحضرت سليمانؑ بيا اسونو غوښتلو بيان هم دې.دهغوى دوژلوحكم ئې اوكړواوئې فرمائيل چه زه دخپل رب دعبادت نه دې ځيزغافل كړې يم،زه داسې ځيزنه شم ساتلې.نودهغوى خپې كټ كړې شوې (⁵)،اودهغوى څټونه پرې كړې شول.(⁶)خودحضرت ابن عباسؓ بيان دې چه حضورﷺ داسونوپه تندى باندې لاس اووهلو.(⁷)

امام ابن جريرؒ هم دغه قول اختياروى چه په ځناوروباندې ظلم كول نه دي پكار.دهغه ځناوروڅه قصورنه ووچه دهغوى سرونه ئې كټ كړې وې.خوزه داوايم چه كيديشي داخبره دهغوى په شريعت كښې جائزوه.اوخاص طورباندې هغه وخت كښې چه هغوى نه دالله تعالى ياد پاتې شواودمونځ وخت تيرشونوداغصه هم دالله تعالى دپاره وه.نوددغه اسونونه هم تيزاوسپك ځيزالله تعالى خپل نبيﷺ ته

¹) الطبرى :۱۹۲/۲۱.
²) ابوداود كتاب الادب باب اللعب بالبنات:٤٩٣٢، وسنده حسن. ابن حبان: ٥٨٦٤.
³) صحيح بخارى كتاب مواقيت الصلاة باب من صلى بالناس جماعة بعد ذهاب الوقت : ٥٩٦.
⁴) صحيح بخارى كتاب الخوف باب الصلاة عند مناهضة الحصون...... قبل حديث: ٩٤٥.
⁵) الطبرى :۱۹۵/۲۱.
⁶) الطبرى :۱۹۵/۲۱.
⁷) الطبرى :۱۹٦/۲۱.



ورکړو.یعني هوادهغه تابع شوه حضرت ابوقتاده رضي الله عنه اوحضرت ابودهما رحمه الله په اکثرحج کولو.دهغوی بیان دې چه یوځل یوکلی کنبی زمونږملاقات یوکلی وال سره اوشونوهغه اوونیل چه رسول الله ﷺ زمالاس اونیولواوماته ئې څه تعلیم راکړو.په هغې کنبی داهم اوفرمائیل چه دالله تعالی دویرې نه ته کوم څیزپریدې الله تعالی به تاته دهغې نه ښه څیزدرکړی.(١)

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ فَتَنَّا | سُلَيْمٰنَ | وَاَلْقَيْنَا | |
| او بې شکه په ازمیښت کښې واچوؤ مونږه | سلیمان | او غورزوله مونږه | |
| او مونږ سلیمان علیه السلام په یو امتحان کښې واچولو او دهغه په تخت مو یو | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى كُرْسِيِّهٖ | جَسَدًا | ثُمَّ اَنَابَ ﴿٣٤﴾ | قَالَ | رَبِّ | اغْفِرْلِيْ |
| په کرسئ دهغه باندې | یوه جوثه | بیا رجوع اوکړه هغه | وې ونیل | اے ربه زما | معافي اوکړه ماته |
| نیمګړې بدن واچولو انو بیا هغه (الله ته) رجوع اوکړه ادهٔ دعا اوکړه اچې انې زماربه! ماته معافي اوکړه | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَهَبْ لِيْ | مُلْكًا | لَّا يَنْۢبَغِيْ | لِاَحَدٍ | مِّنْۢ بَعْدِيْ ۚ | اِنَّكَ |
| او راکړه ماله | داسې بادشاهي | چې نهٔ ښائي | هیچا لره | روستو زمانه | بیشکه تهٔ |
| اوداسې بادشاهي راته راکړې | چې زما نه بغیر(په دې زمانه کښې) بل هیچا ته حاصله نشي | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْتَ الْوَهَّابُ ﴿٣٥﴾ | فَسَخَّرْنَا | لَهُ | الرِّيْحَ | تَجْرِيْ | بِاَمْرِهٖ |
| هم ته ورکونکې ئې | پس تابع کړه مونږه | هغه لره | هوا | چې چلیده به | په حکم دهغه |
| بیشکه ته ډیر زیات ورکونکې یې | نو مونږ بادونه د هغه تابع کړل | چې دهغه په حکم به | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رُخَآءً | حَيْثُ | اَصَابَ ﴿٣٦﴾ | وَالشَّيٰطِيْنَ | كُلَّ بَنَّآءٍ |
| په نرمئ سره | هر ځائې ته | چې خوښه وه دهغه | او تابع مو کړل شیطانان | هر قسم مانړئ جوړونکی |
| دهغه په اختیارکښې الوتل | کم خوا چې به دهغه خوښه وه | اوتول عمارت جوړونکی او غوپه وهونکی پیریان | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّغَوَّاصٍ ﴿٣٧﴾ | وَّاٰخَرِيْنَ | مُقَرَّنِيْنَ | فِي الْاَصْفَادِ ﴿٣٨﴾ | هٰذَا عَطَآؤُنَا |
| او غوپې وهونکی | او نور | ترلي شوی | په زنځیرونو کښې | دا بخشش زمونږ دې |
| مودهغه تابع کړل | اونور پیریان هم چې په زنځیرونو کښې ترلي پراته وو | دا زمونږ ورکړه ده - | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَامْنُنْ | اَوْ اَمْسِكْ | بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٩﴾ | وَاِنَّ | لَهُ | |
| پس احسان کوه په ورکړه سره | یا مهٔ ورکوه | بې حسابه | او بیشکه | هغه لره دې | |
| نو ورکړه کوه یا ئې مکوه | .................ستا نه به ددې هیڅ تپوس نه کیږي | اوهغه مونږ ته | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| عِنْدَنَا | لَزُلْفٰى | وَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿٤٠﴾ ع | |
| زمونږ سره | نزدې مقام | او ښهٔ ځائې دورتلو | |
| ډیر نزدې دې | اوډیر ښه انجام ئې دې | | |

(١) احمد:۵/۷۸ وسنده صحیح.

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمٰنَ وَاَلْقَيْنَا عَلٰى كُرْسِيِّهٖ**

**دحضرت سليمانؑ ازميښت اواختيار او اسرائيلي بې بنياده روايات:** مونږ د(حضرت)سليمان امتحان واخستلو اودهغه په كرسې باندې مويوبدن واچولويعنى شيطان.بياهغه خپل تخت اوتاج طرف ته واپس راغې دهغه شيطان نوم صخروويا اصروويا حقيق وو.داواقعه اكثرمفسرينوبيان كړې ده.چادتفصيل سره اوچالړه.داواقعه داشان بيانوى چه سليمانؑ ته دبيت المقدس دجوړولوحكم اوشوچه داسې ئې جوړ كړه چه داوسپنې اوازترې هم نشى اوريدې كيدلې.سليمانؑ ډيركوششونه اوكړل خوكامياب نه شول .بياسليمانؑ واوريدل چه په سمندركښې يوشيطان دې چه دهغه نوم صخردې هغه ته داسې يوه طريقه معلومه ده.سليمانؑ حكم اوكړو چه هغه په څه شان راولئ:يوه سيند اوسمندرته غورخيده.په هره اوومه ورځ به هغې كښې دسرپورې اوبه راتلې.اوهغه شيطان به داڅكلې.دهغې اوبه ئې ويستلې اوهغه ئې بالكل خالى كړو. اوبالكل خالى كولونه پس ئې دهغه شيطان دراتلوپه ورځ ئې هغه دشرابونه ډك كړو.هغه چه كله راغې اوداحالت ئې اوليدونوونيل چه دمزې څيزخودې خودعقل دشمن دې،جهالت زياتولووالاڅيزدې.نوهغه ترې لاړو.چه كله ډيرزيات ترې شونودمجبورې دلاسه ئې اوڅكلې.اوس دهغه عقل ختميدو او د سليمانؑ هغه ګوته ئې ورته اوخودله ياداوړوپه مينځ كښې هغه باندې مهراولږولو.دې بې بسه شو. د حضرت سليمانؑ حكومت دهغې ګوتې په وجه وو.كله چه هغه حضرت سليمانؑ ته راغې نوهغه ورته ددغه كاركولوحكم وركړو،هغه لاړواودملاچرګك هګئ ئې راوړې اودهغې دپاسه ئې شيشه كيخوده.ملاچرګك راغې اوخپلې هګئ ئې اوليدلې هغه خلوروطرفونه كوشش اوكړوخوهګئ په لاس ورنغلې،هغه لاړواوالماس ئې راوړه اوپه هغه شيشه باندې ئې كينولوهغه شيشه كټ كول شروع كړل.اخركښې شيشه كټ شوه اوخپلې هګئ ئې يوړلې.هغه الماس ئې راواخستلو اوپه هغه باندې كاڼړې ماتولو اوكاڼې شروع كړو.حضرت سليمانؑ چه به كله بيت الخلاء ياحمام ته تلونوهغه ګوته به ئې ويستله.يوه ورځ حمام ته تلواوهغه شيطان ورسره وو،هغه وخت حضرت سليمانؑ فرضى غسل دپاره تلو.ګوته ئې هغه ته حواله كړه اولاړوهغه ګوته سمندرته اوغورخوله اوپه شيطان باندې دحضرت سليمانؑ شكل واچولې شواودحضرت سليمانؑ نه تخت .اوتاج واخستلې شو.په ټولوڅيزونوباندې شيطان قبضه اوكړه سوادحضرت سليمانؑ دبيبيانونه اوس په دې سره ډيرې غيرمعروف خبرې هم ښكاره شوې.په هغه زمانه كښې يوسړې ووچه داسې وولكه دحضورﷺ په زمانه حضرت عمر فاروق ؓ.هغه هم اوونيل چه ازميښت كول پكاردى ماته خوداكس حضرت سليمانؑ نه ښكارى .نو هغه ترې يوه ورځ تپوس اوكړو،جناب كه په يوكس باندې دشپې غسل واوړى اوديخنې په وجه باندې هغه دسحرنمرختلوپورې غسل اونه كړى نوڅه ګناه شته؟هغه ورته جواب ورنه كړو.څلويښت ورځو پورې هغه دسليمانؑ په تخت باندې وو.بياسليمانؑ ته دكب دخيټې نه هغه ګوته ملاؤشوه.په لاس كښې اچولوسره ټول څيزونه دسليمانؑ تابع شول.ددې بيان په دې ايت كښې دې.سدىؒ فرمائى چه حضرت سليمانؑ سل ښځې وې،سليمانؑ ته په ټولوكښې زيات اعتبارپه هغې كښې جراده نومې بى بى باندې وو.كله چه به غسل ته يابيت الخلاء ته تلونوهغه ګوته به ئې هغې ته وركوله.يوځل حضرت سليمانؑ بيت الخلاء ته لاړواويوشيطان دسليمانؑ په شكل كښې ئې بى بى ته ورغې اوګوته ئې ترې اوغوښتله هغې ورته وركړه.دهغې اخستلوسره په تخت كيناستو.اوس چه سليمانؑ راغې اوګوته ئې ترې اوغوښتله نوښځې ورته اوونيل چه تاسوخوګوته يوړله.هغوى پوهـ شوچه دادالله تعالى ازميښت دې ډيرپريشانى كښې دمحل نه اووتلو.هغه شيطان څلويښت ورځې حكومت اوكړو، خود حكمونودبدلولوسره عالمان پوهـ شول چه داحضرت سليمانؑ نه دې.نودهغه عالمانويوجماعت د سليمانؑ ښځوته راغې اوهغوى ته ئې اوونيل داڅه معامله ده؟زمونږپه سليمانؑ باندې شك دې چه واقعى دسليمانؑ عقل لاړويادې سليمانؑ نه دې؟ګنى

داسې دشریعت خلاف کارونه به هغه نه کول .ښځوچه داواوریدل نوپه ژړاشوې،اوداخلق دهغه خانې نه واپس شول اودتخت نه ګیرچاپیره کیناستل اوتورات نې کهلاوکړواودهغې تلاوت نې شروع کړو.دخبیث شیطان دالله تعالی دکلام نه اوتختیدو اوګوته نې سمندرته اوغورځوله،هغه یوکب تیره کړه.حضرت سلیمانؑ هم داسې خپلې ورځې تیرولې.

یوځل بهر ته اووتلوډیرزیات وږې وو،خلقوکبان نیول،دهغوی خواه ته ورغې اویوکب نې ترې اوغوښتلو اوخپل نوم نې هم ورته اوخودلو.په هغې باندې یوکس ته ډیرقهروزغلوچه دااوګورئ خیرمارهم ځان ته سلیمانؑ وائی.هغوی سلیمانؑ وهل شروع کړل.سلیمانؑ زخمې شواویوخواه ته کیناستواوخپلې وینې نې وینځلې.څه کسان پرې خفه شول خیرمارنې هسې اووهلو.ورشئ اوورته دوه کبان ورکړئ وږې دې ځان ته به نې وراته کړی اوبه نې خوری.نوهغوې ورته کبان ورکړل.په لوږې په وجه باندې سلیمانؑ خپل زخمونه اووینه پریخودله اوزرزرنې دکب خیټه اوسیرله.دالله تعالی په قدرت باندې دکب دخیټې نه هغه ګوته رااوتله.سلیمانؑ دالله تعالی تعریف اوکړواوهغه ګوته نې واچوله،هغه وخت مرغې راغلې اوپه سلیمانؑ باندې نې سورې جوړکړو،اوهغه اوپیژندواودهغه نه نې معافی اوغوښتله.سلیمانؑ اوفرمائیل داټول دالله تعالی حکمونه وو،دالله تعالی دطرف نه یوامتحان وو.سلیمانؑ تشریف راوړواوپه خپل تخت باندې کیناستواوحکم نې اوکړوچه دغه شیطان که دهرځائې نه وی ګرفتارنې کړئ،نوهغه قیدکړې شو.سلیمانؑ هغه دوسپنې په یوبکس کښې بندکړواوپه هغې باندې خپل مهراولږولواوسمندرکښې نې اوغورځولوچه هغه به :قیامت ورځ پورې دلته پروت وی.دهغه نوم حقیق وو.دسلیمانؑ دعاچه ماته دې داسې بادشاهی راکړې شی چه هغه زمانه پس دچاهم دکارنه وی،هم پوره شوه اوهوادحضرت سلیمانؑ تابع کړې شوه.دمجاهدؒ نه روایت دی چه دیوشیطان چه دهغه نوم اصف وویوځل حضرت سلیمانؑ ترې تپوس اوکړوچه ته خلق فتنې کښې څنګه اچوئ؟هغه عرض اوکړوچه ماته لږه خپله ګوته اوښائې زه تاسو(ؑ)ته اوس ښایم. سلیمانؑ ورته ګوته ورکړه هغه ګوته سمندرته اوغورځوله اوپخپله د تخت اوتاج مالك شو او د سلیمانؑ په شکل اوصورت باندې خلق دالله دلارې نه لرې کول.دایاداساتئ چه داټولې خبرې بنی اسرائیلوبیان کړی دی.اوپه دې کښې دټولونه زیاته منکره خبره هغه ده کومه چه په ابن ابی حاتم کښی ده اومخکښی بیان کړې شوه.چه په هغې کښی دسلیمانؑ دبی بی جراده ؓ ذکردې.په دې کښی دا هم دی چه دې پورې حالت رسیدلې ووچه هلکانوبه سلیمانؑ په کانړوباندې ویشتلو.دسلیمانؑ دښځونه چه کله عالمانوتپوس اوکړونوهغوی اووئیل چه اومونږته هم دده په سلیمانؑ کیدوباندې شك دې ځکه چه هغه دحیض په حالت کښې هم مونږته راځې.شیطان ته چه کله معلومه شوه چه دهغه رازښکاره شوې دی،نوهغه جادواوکړواودکفرکتابونه نې اولیکل اودکرسې لاندې نې خښ کړل. او بیانې دخلقوپه مخکښی هغه راویستل اوخلقوته نې اووئیل چه اوګورئ ددې کتابونوپه وجه باندې سلیمانؑ په تاسوباندې حکومت کولو.نوخلقوسلیمانؑ ته کافرووئیل شروع کړل.حضرت سلیمان ؑ به سمندرپه غاړه باندې مزدوری کوله.یوځل یوکس ډیرکبان اخستلی وو،مزدورته نې اوازاوکړو ،سلیمانؑ ورغې،هغه ورته اووئیل چه دایوسه،حضرت سلیمان ؑ اووئیل مزدوری به څه راکوې؟ هغه ورته اووئیل چه ددې کبانونه به درته یوکب درکړم.سلیمانؑ دکبانوټوکرې په سرکړه اوهغه کره نې یوړله.هغه ورته یوکب ورکړو،سلیمانؑ چه دهغه خیټه اوسیرله نودهغې نه ګوته رااوتله. د اچولو سره ټول شیطانان،پیریان اوانسان نې بیاتابع شول.اوپه صفونوکښی حاضرشول.سلیمانؑ په ملك باندې قبضه اوکړه اوهغه شیطان ته نې سخته سزاورکړه.نو((ثُمَّ أَنَابَ)) نه مطلب مسلط کړې شوی شیطان واپسی ده.ددې سندونه دحضرت ابن عباسؓ پورې دی.دا سندقوی خودې خوظاهره ده چه دا

سندحضرت ابن عباسؓ داهل كتاب والاته اخستلې دې.داهم هغه وخت چه كله مونږ دابن عباسؓ
قول صحيح اوګڼړو.داهل كتابويوجمات سليمانؑ نبى نه منى نوداهم كيديشى چه هغوى دخان نه
داقصه جوړه كړې وي.په دې كښې خوهغه څيزونه هم دى كوم چه بالكل منكردى.خاص طورباندې
دهغه شيطان دسليمانؑ ښځوته ورتلل.اوملايانوهم دغه شان قصې بيان كړى دى خوددې خبرې نه
ټولوانكاركړې دې چه شيطان به دسليمانؑ ښځوته ورتلو،اوونيلى دى چه هغه به دسليمانؑ
ښځوته نه شوتلې اودنبى دكوراودهغه دښځودشرافت هم دغه تقاضاوه.نوروخلقوهم داواقعه ډيره په
تفصيل سره بيان كړې ده خودټولواصل هم دغه دې چه دبنى اسرائيلواواهل كتابونه نى اخستلې ده.
والله اعلم.

شيبانيؒ فرمائى چه سليمانؑ خپله ګوته په عسقلان كښې موندلې وه اودبيت المقدس پورې
تواضعا پيدل تلې وو.امام ابن ابى حاتم په صفت سليمانؑ كښې دكعب احبارنه يوعجيبه روايت نقل
كړې دې.ابواسحاق مصرى وائى چه كله د﴿اِرَمَ ذَاتِ الۡعِمَادِ﴾ دقصې نه حضرت كعبؒ فارغ شونو
حضرت معاويهؓ اوونيل،ابواسحاقﷺ اسودسليمانؑ دكرسۍ ذكراوكړئ،نواوئې فرمائيل چه هغه د
هاتهى دغاښ وه.ياقوت،زبرجد اوملغلرو باندې پيللې شوې وو اوڅلوروطرفوته دهغې نه د سرو زرو د
كهجوروونې جوړې شوې وې.كومې چه ښى طرف ته وې دهغې په سرباندې دسروزروطاوسونه وو،اوپه
ګس طرف والاباندې ګنجى (داهم يوه لويه مرغنى ده) وې،اوهغه هم د سرو زرو وو.ددې كرسۍ ښى
طرف ته دصنوبردوه ونې دسرووې اوګس طرف ته ئې دسرونه زمرې جوړشوې وو.دهغوى په سرونو
باندې دزبرجددوه ستې وې.اودكرسۍ دواړوطرفونو ته دسرودانګورو زيلې وې چه هغې كرسۍ پټه
كړې وه دهغې غونچې هم دسروملغلرو وې،بيادكرسۍ په اعلى درجه باندې دسرودوه زمرى جوړشوى
وو چه دهغوى مينځ خالى وواوپه هغې كښې به مشك اوعنبروو.حضرت سليمانؑ چه به كله كرسۍ ته
راتللونودې زمروبه حركت كولواودهغوى دحركت په وجه باندې به دمشك اوعنبربوئى څلوروطرفوته
خور شو.بيابه دسرو منبرونه خواره كړې شول په هغې كښې به يودسليمانؑ دوزيرووواوبيه دهغه
وخت دټولونه دلوې عالم وو.بيابه دكرسۍ مخې ته اويامنبرونه دسرو زروخواره كړې شول چه په هغې
باندې به دبنى اسرائيلو قاضيان اودهغوى سرداران كيناستل.دهغوى نه شاته به پنځه ديرش د سرو
منبرونه نوروو،چه هغه به خالى وو،حضرت سليمانؑ به چه كله تشريف راوړونوپه ړومبئ پوړئ
باندې خپه ايخوېدوسره به دې ټولوڅيزونوخپل طرف بدل كړوشيرپه خپله ښئ خپه مخكښى كړه
اوګنجئ به خپل ګس لاس مخكښى كړوچه كله به په دويمه پوړئ باندې خپه كيخودله نوشيرپه خپل
ګس لاس خوركړواوګنجئ به ښي.چه كله به سليمانؑ دريمه پوړئ باندئ خپه كيخوده اوپه كرسۍ
باندې به كيناستونوپوې غټې ګنجئ به دسليمانؑ په سرباندې دهغه تاج كيخودواوبيابه كرسۍ
تيزئ سره واپس شوه.حضرت معاويهؓ تپوس اوكړواخرددې وجه څه وه؟او وې فرمائيل هغه دسرو په
پولاټ باندې ووكوم چه صخرنومې جن جوړكړې وو،دهغې تاويدوسره به لاندېنى طاوس او ګنجئ ټول
به راوچت شول اوسرونه به ئې ښكته كړل،اووزرې به ئې خوزولې.چه دهغې سره به دسليمانؑ په بدن
باندې مشك اوعنبرراپريوتل.بيابه دسرويوې كونترې دسليمانؑ په لاس كښې تورات كيخودچه
دهغې به سليمانؑ تلاوت اوكړو.خودا روايت بالكل غريب دې.

**قوله تعالى:: وَهَبۡ لِيۡ مُلۡكًا لَّا يَنۡۢبَغِيۡ لِاَحَدٍ مِّنۡۢ بَعۡدِيۡ**

**ددې صحيح مطلب او ددې متعلق احاديث::** دحضرت سليمانؑ ددعامطلب دادې چه ماته يوداسې ملك
راكړې شى چه زمانه هغه څوك نشى اخستلې،څنګه چه دهغه بدن واقعه ده چه هغه په كرسۍ باندې
واچولې شو.داسې نه وه چه سليمانؑ دنوروخلقودپاره دداسې ملك نه ملاويدودعاكوله.خوځه خلقو

چه ترې داسې معنی اخستلې ده هغه صحيح نه ده.بلکه صحيح مطلب دادې چه دسليمانؑ ددعا مطلب داوو چه ماته يوداسې ملك اوسلطنت راکړه چه زمانه پس بل کس ته داسې سلطنت ملاونشي.هم دا دايت دالفاظونه معلوميږي .صحيح بخاری کښې دی چه حضورﷺ يوځل اوفرمائيل،چه يوسرکش جن هغه بله شپه زماسره زياتې کول غوښتل اوزمامونځ ئې خرابول غوښتل خوالله تعالی په هغه باندې ماته قابوراکړه.اومااوغوښتل چه زه هغه دجمات ستن پورې اوتړم چه دسحرتاسوهغه وينئ،خوهغه وخت ماته دخپل رور (سليمان) دعاياد شوه.

دحديث روايت کونکې حضرت روحؒ فرمائی،بياحضورﷺ هغه ذليل اوخوارکړو([1]).اوپه روايت کښې دی چه حضورﷺ کله مونځ ته اودريدونومونږ واوريدل چه حضورﷺ فرمائی «اعوذبالله منک» بياحضورﷺ درې ځله اوفرمائيل العنک بلعنة الله بياحضورﷺ هم دغه شان خپل لاس ورمخکښې کړولکه چه څه څيزراخلي.چه کله فارغ شونومونږترې ددې خبرووجه معلومه کړه.حضورﷺ اوفرمائيل دالله تعالی دښمن ابليس اورراوړواوزماپه خولې کښې اچول غوښتل نومادرې ځله اعوذبالله اووئيل.بيامې درې ځله په هغه باندې لعنت اووئيلو،خوهغه بياهم روستونه شو.بيامااوغوښتل چه هغه اونيسم اودمدينې ماشومان په هغه باندې لوبې اوکړي.که زمونږدرور(سليمان)دعانه وې نومابه هم دغه شان کړې وې.([2])

حضرت عطاء بن يزيدليثیؒ مونځ کولوچه ابوعبيددهغوی مخې ته تيريدل اوغوښتل هغوی دخپل لاس په اشاره باندې منع کړو.بيائې اوفرمائيل ماته حضرت ابوسعيدخدریؓ داحديث بيان کړې دې چه حضورﷺ دسحرمونځ کولواوزه هم دحضورﷺ روستوولاړووم.قرات په حضورﷺ باندې ګډوډ کړې شونودفارغيدونه پس حضورﷺ اوفرمائيل چه کاش تاسوليدلې وې چه ماابليس نيولې وواوداسې زورسره مې دهغه مرئ نيولې وه چه دهغه دخولې لاړې زمادمينځنې اودشهادت په ګوتوباندې راغلې.که زمادرور(سليمان)دعانه وې نوسحربه هغه دجمات ستن سره تړلې شوې ملاويداوادمدينې ماشومانوبه هغه تنګولو.دستاسونه چه ترکومې کيديشي نوددې خبرې خيال ساتئ چه دمونځ په دوران کښې ستاسومخکښې څوك تيرنشي([3]).(مسنداحمد)

په حديث کښې دی چه ربيعه بن يزيدبن عبدالله رملیؒ فرمائی چه زه حضرت عبدالله بن عمروبن عاصؓ ته طائف کښې دهغه باغ ته لاړم چه دهغې نوم بط وو.هغه وخت هغه ديوقريشي لاس نيولې ووچه هغه زناکاراوشرابی وو.ماورته اووئيل چه ماته پته لږيدلې ده چه تاسوداحديث بيانوئ چه څوك يوګوټ شراب اوڅکی الله تعالی به دهغه څلويښت ورځې توبه نه قبلوی.اوخراب کس هغه دې څوك چه دموريه خيټه کښې خراب شوې وی.کوم کس چه صرف دمونځ په نيت باندې بيت المقدس ته لاړشي نوهغه دګناهونونه داسې پاك شی لکه چه هم نن پيداشوې وی.هغه شرابی کس دچانه چه حضرت عبداللهؓ لاس نيولې ووهغه دشرابوذکراوريدوسره لاس خلاص کړواو تختيدو. بياحضرت عبدالله اوفرمائيل چه چاد پاره دا حلال نه دی چه هغه زماباره کښې داسې خبره اوکړی کومه چه مانه وی کړې. ماخودحضورﷺ نه اوريدلی دی چه څوك يوګوټ شراب اوڅکی څلويښت ورځوپورې الله تعالی دهغه مونځ نه قبلوی اوکه هغه توبه اوکړی نوالله تعالی دهغه توبه قبلوی.اوکه بياشراب اوڅکی نوبيائې څلويښتوورځوپورې مونځ نه قبلوی اوکه بياتوبه اوکړی نوبيائې توبه قبوله کړی.ماته صحيح يادنه دی

[1]) صحيح بخاری كتاب التفسير سورة ص باب قوله (( وهب لی ملكا لا ينبغی لاحد من بعدی انك انت الوهاب)) :۴۸۰۸، صحيح مسلم: ۵۴۱.

[2]) صحيح مسلم كتاب المساجد باب جواز لعن الشيطان فی اثناء الصلاة........:۵۴۲. ابن حبان:۱۹۷۹.

[3]) احمد: ۸۲/۳، ابوداود كتاب الصلاة باب مايومر المصلی ان يدرا عن المارين يديه: ۶۹۹. مختصرا وسنده حسن.

چه په دریم یاڅلورم ځل ئې اوفرمائیل چه که هغه بیاهم شراب اوڅکی نویقینا الله تعالی به په هغه باندې ددوزخیانودبدن پیپ اووینه دقیامت په ورځ اوڅکوی.اودحضورﷺ نه ماوریدلی دی چه الله تعالی خپل مخلوق په تیاره کښې پیداکړل،بیائې په هغوی باندې خپل نورواچولو.په چاباندې چه هغه ورځ دانورپریوتوهغه هدایت والاشواوچاته چه هغه نوراونه رسیدوهغه دصحیح لارنه ورك شو.په دې وجه باندې زه وایم چه دالله تعالی دعلم مطابق قلم چلیدلې دې.

**د سلیمان ﷺ درې دعاګانې:** اومادرسول اللهﷺ نه اوریدلی دی چه سلیمانﷺ دالله تعالی نه درې دعاګانې غوښتلې وې،چه په هغې کښې دوه خوهغه ته ملاؤشوې اوزمونږامیددې چه دریمه زمونږدپاره وی.①ماته داسې حکم راکړه چه هغه دستادحکم برابروی.② ماته داسې ملك راکړه چه هغه زمانه پس دچالائق نه وی.③کوم کس چه دخپل کورنه دې جمات کښې مونځ کولوپه اراده باندې راوځی نوچه کله هغه واپس کیږی نوهغه دې داسې وی لکه چه هم نن پیداشوې وی.نوزمونږامیددې چه داورته الله تعالی زمونږدپاره ورکړې وی ([1]).طبرانی کښې دی چه حضورﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی حضرت داؤدﷺ ته دځان دپاره دکورجوړولوحکم اوکړو.حضرت داؤدﷺ اول دخپل ځان دپاره کورجوړکړو،په هغه باندې وحی راغله چه تاخان دپاره زمانه مخکښې کورجوړکړو؟داؤدﷺ عرض اوکړواې پروردګاراهم دغه فیصله شوې وه.بیائې جمات جوړول شروع کړل.دیوالونه پوره شول نواتفاقادریمه حصه ئې راوغورځیده.داؤدﷺ الله تعالی ته دعااوکړه نوجواب ورته ملاؤشوچه ته زماکورنشې جوړولې،عرض ئې اوکړوولې؟اوئې فرمائیل ځکه چه دستادلاسونونه وینه توې شوې ده.عرض ئې اوکړواې الله!هغه خوهم دستاپه محبت کښې توې شوې ده.اوفرمائیل اوخوهغه زمابندګان وو.زه په هغوی باندې رحم کوم.په داؤدﷺ باندې داخبرې سختې تیرې شوې.بیاوحی راغله چه مه خفه کیږه.زه به داستادخوی سلیمان په لاس باندې پوره کوم.نودداؤدﷺ دوفات نه پس حضرت سلیمانﷺ هغه جوړول شروع کړل.کله چه پوره شونودیرې قربانیانې ئې اوکړې اوبنی اسرائیل ئې رااوغوښتل اوپه هغوی باندې ئې اوخوړلې.نووحی په راغله چه تاداهرڅه زمادحکم دپوره کیدوپه خوشحالئ کښې اوکړل نوچه ته څه غوارې هغه اوغواړه تاته به ملاؤشي.عرض ئې اوکړواې الله!زمادرې سوالونه دی.ماته داسې فیصله اوښایه چه هغه دستادمرضئ مطابق وی.اوداسې ملك راکړه چه هغه زمانه پس دچالائق نه وی.اوځوك چه دې کورته صرف دمونځ په اراده باندې راشی نوهغه دخپل ګناهونونه داسې ازادکړه لکه چه هم نن پیداشوی وی.په دې کښې دوه څیزونه خوهغه وخت هغه ته الله تعالی ورکړل اوزماامیددې چه دادریم څیزبه هم ورکړې شوې وی ([2]).رسول اللهﷺ به خپله هره دعاددې لفظونونه شروع کوله.سبحان الله رب العلی الاعلی الوهاب([3]) (مسنداحمد)

یوبل روایت کښې دی چه سلیمانﷺ عرض اوکړوچه اې الله ماته داسې زړه راکړه کوم چه دستانه ویریږی ځنګه چه زمادپلارزړه به دستانه ویریدو.اوزماپه زړه کښې خپله مینه واچوه.ځنګه چه زمادپلارپه زړه کښې دستامینه وه.په دې باندې الله تعالی ډیرخوشحاله شوچه زمابنده زمادورکړې به وخت کښې هم صرف زمامینه اوزمانه ویره غواړی.زمادې په خپل عزت قسم وی زه به دومره لوې حکومت درکړم چه هغه به ستانه پس چاته ملاؤنشي.بیاالله تعالی دهغه په ماتحتئ کښې هواګانې کړې اوپیریان ئې هم دهغه ماتحت کړل اودومره مال اودولت نه پس ئې هم هغه دقیامت په ورځ باندې دحساب کتاب نه ازادکړو.

---

[1] ) احمد:۱۷٦/۲، نسائی کتاب المساجدباب فضل المسجد الاقصٰی والصلاة فیه:٦۹٤. وسنده صحیح.

[2] ) طبرانی :٤٤۷۷، مجمع الزوائد:۸/٤.

[3] ) احمد:٥٤/٤..

**د داؤد ﷺ د سليمان ﷺ په حق کښې دعا:** ابن عساکرکښې دی چه حضرت داؤدﷺ دعااوکړه چه اې الله تعالیٰ!دسليمان سره هم په هغه لطف اوکرم سره پيش شه کوم لطف اوکرم چه تاپه مابانديې اوکړو.نووحی اوشوه چه سليمان ته اووايه،چه هغه دې هم دغه شان زمااوسی څنګه چه ته زماوې.نوزه به هم ورسره هغه شان شم څنګه چه دستاسره ووم.بيابيان کيږی چه کله سليمانﷺ داللہ تعالیٰ په مينه کښې خانسته اووفاداراسونه حلال کړل نوالله تعالیٰ هغه ته دهغې په ځاې باندې ښه ځيزونه ورکړل.يعني هوائي دهغه تابع کړه چه هغه ديوې مياشتې سفردسحرپه يوه ګهنټه کښې ختموی.اودغه شان دمابنام هم.دکوم ځاې چه اراده اوکړی په لږساعت کښې هلته اورسی.پيريان ئې هم دسليمانﷺ تابع کړل،چه په هغوی کښې به چاغتې غټې اوباخه کورونه جوړول چه هغه دانسان دطاقت نه بهروو، او څه غوټه خوروچه هغوی به سمندردوبخ نه لولواوهيرې اوقسم قسم قيمتی ځيزونه راويستل.اوبياڅه نور هم ووچه هغوی په بيړوکښې تړلی شوی وو،داخوهغه ووچه هغوی يادحکومت خبره نه منله اوپه کار کښې به ئې شرارت اوکمی کوله ياخلق به ئې په عذابول. دازمونږمهربانی،زمونږانعام او زمونږ عطيه ده،اوتاسره اختياردې چه څه کوئ کوه هريوځيزبې حسابه دې په څه باندې هم حساب نشته.چه څه به دستادژبې نه وځی هغه به حق وی.

**رسول کريمﷺ ته اختيار او د نبی کريمﷺ جواب:** په صحيح حديث کښې دی چه رسول اللهﷺ ته اختيار ورکړې شوکه غوارې نوبنده اورسول اوسه يعني چه څه حکم اوشی هغه منه اوکه غوارې نونبی او بادشاه شه،چه چاته غوارې ورکوه اوچه چاته نه غوارې مه ورکوه اوددې به څه حساب درنه الله تعالیٰ نه غوارې.نوحضورﷺ دجبرائيلﷺ نه مشوره واخستله اودهغه په مشوره باندې ئې رومبۍ خبره اومنله.ځکه چه دفضيلت په لحاظ سره هغه اعلیٰ ده.اګرچه نبوت اوسلطنت لوې ځيزدې.په دې وچه باندې دسليمانﷺ ددنياعزت اوبادشاهت بيانولوسره فرمائی چه په اخرت کښې هم زمونږسره لوئې مرتبې اوبهترين بزرګی اواعلیٰ نزدې والې شته.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاذْكُرْ | عَبْدَنَآ | اَيُّوْبَ | | | | |
| او ياد کړه | بنده زمونږه | ايوب عليه السلام | | | | |
| اوزمونږ بنده ايوب ياد کړه | | | | | | |
| اِذْ | نَادٰى | رَبَّهٗٓ | اَنِّىْ | مَسَّنِىَ | الشَّيْطٰنُ | |
| کله چې | هغه اواز اوکړو | رب خپل ته | چې بيشکه زۀ چې يم | مسه کړې يم زۀ | شيطان | |
| څه وخت چې هغه خپل رب ته آوازاوکړو | چې شيطان زۀ په بيمارئ او په مشقت کښې | | | | | |
| بِنُصْبٍ | وَّعَذَابٍ | اُرْكُضْ | بِرِجْلِكَ | هٰذَا مُغْتَسَلٌ | بَارِدٌ | |
| په تکليف سره | او په عذاب سره | اووهه | په پښه خپله (زمکه) | داوبۀ دی دلمبولو | يخې | |
| اچولی يم (جواب ورته اوشو) چې ته خپله پښه په زمکه اووهه | اود لامبلو اوڅکلو دپاره دا يوه يخه | | | | | |
| وَّشَرَابٌ | وَوَهَبْنَا | لَهٗٓ | اَهْلَهٗ | وَمِثْلَهُمْ | مَّعَهُمْ | رَحْمَةً |
| اواوبه دی دڅکلو | او ورکړو مونږ | هغه ته | اهل دهغه | او نور هغومره | دهغوئ سره | په طور درحمت |
| چينه (راوتلې) ده | اومونږ ورته ټول اهل وعيال واپس ورکړه | اودهغوئ هومره ورسره نور هم | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنَّا | وَذِكْرٰى | لِأُولِي الْأَلْبَابِ ۝ | وَخُذْ | بِيَدِكَ |
| دطرفه زمونږ نه | او په طور دنصيحت | دپاره دخاوندانو دعقلونو | او واخله | په لاس خپل کښې |
| دازمونږ مهرباني ده | اودعقل مندو دپاره د عبرت سبق وو | | .او ائې ايوب ﷺ ته په خپل لاس کښې يو | |
| ضِغْثًا | فَاضْرِبْ بِّهٖ | وَلَا تَحْنَثْ ؕ | إِنَّا | وَجَدْنٰهُ |
| دنرو لختو يو موټې | پس اووهه هغه په هغې سره | او قسم مهٔ ماتوه | بيشکه مونږه | اوموندو هغه |
| موټئ د کی راواخله | اوپه دې (خپله بي بي) اووهه | اوقسم مه ماتوه | ...... مونږ هغه په حقيقت کښې ډير صابره | |
| صَابِرًا ؕ | نِعْمَ الْعَبْدُ ؕ | إِنَّهٗ | أَوَّابٌ ۝ | |
| صبر ناک | ډير ښهٔ بنده | بيشکه هغه | رجوع کونکې دې | |
| بيا مونده | هغه ډير ښه بنده وو | اومونږ ته ډير رجوع کونکې وو | | |

**قوله‌تعالى:: وَاذْكُرْ عَبْدَنَا أَيُّوبَ**

**دحضرت ايوب ﷺ ذکراودهغه بيمارۍ:** دحضرت ايوب ﷺ ذکرکيږې اودهغه دصبرپه امتحان کښې دپاس کيدوتعريف کيږي چه مال ئې بربادشو،بچې ئې مره شول،په بدن ئې مرض راغې. تر دې چه د ستن دسورى په مقدارئې په بدن کښې دبيمارۍ نه خالي ځائې پاتې نه شو.صرف ژره يې سلامت وو .اوبياد غريبۍ اومفلسۍ داحال ووچه ديوخت خوراك ورسره نه وواوپه حال کښې ئې هم داسې څوك نه ووچه د هغوى ئې خبراخستلې وودېوې بي بي صاحبې نه علاوه چه دهغې په زړه کښې دالله تعالى ويره اودخاوندسره مينه وه.دخلقوکارونه به ئې کول اوخپله اودخاوندخيټه به ئې مړوله. اتو کالوپورې هم دغه حال وو.حالانکه ددې نه مخکښې دهغې نه څوك مالدارنه وو.اولادئې هم ډيرووااود دنيا هر يو .خوشحالي ورته ملاؤوه.اوس ترې هريوځيزواخستلې شو،اوکوم ځائې به چه دښارګند غورځيدلوهغلته ايوب ﷺ راوستلې شو.په دې حال کښې يوه ورځ دوه نه،کال دوه نه بلکه پوره اتلس کاله تير شول. خپلواوپردوټولوترې مخ واړولو،اودتپوس کولوولاتې څوك پاتې نه شو.صرف دغه يوه ښځه ئې وه چه هغه به هروخت شپه اوورځ دهغه په خدمت کښې وه.اودکارکولوپه وخت کښې به دمجبورۍ په وجه دايوب ﷺ نه جداکيدله.اواخرکاردازميښت وخت ختم شواودالله تعالى دې بزرګ بنده الله تعالى ته منت اوزارى اوکړه اوپه رپيدونکوشوندوباندې،دزړه داخلاص نه دعااوکړه،چه ائې الله!زه غم اودردولم،اوته **ارحم الرحمين** ئې.دلته چه کومه دعاده په هغې کښې دبدن دتکليف اودمال او اولاد درد ذکردې.هغه وخت رحيم اوکريم الله تعالى دهغه دعاقبوله کړه،اوحکم اوشوچه په زمکه باندې خپله خپه اووهه. خپه وهلوسره هلته يوه چينه رااووتله حکم اوشوچه په دې اوبوباندې غسل اوکړه،غسل .کولوسره دبدن ټولې بيمارياني داسې لاړې چه لکه هغه بالکل نه وې.بياحکم اوشوچه خپله پونده اووهه. هلته خپه وهلوسره يوه بله چينه شروع شوه.حکم اوشوچه ددې اوبه اوڅکه‌اددغه اوبوڅکلوسره دبدن دننۍ بيمارياني ختمې شوې اوډظاهراوباطن تندرستى ورته ملاؤشوه.

**دايوب ﷺ متعلق يو روايت::** ابن جريراوابن ابى حاتم کښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائى چه اتلس کاله دالله تعالى داپيغمبرپه درد او تکليف کښې وو.خپلواوپردوټولوپريخودو.اودايوب ﷺ دوه مخلص دوستان .به سحرمابنام دهغه تپوس دپاره راتلل،يوځل هغه يوبل ته اوونيل چه داسې ښکارى چه ايوب ﷺ دالله تعالى څه لويه نافرمانى کړې ده چه دهغې په وجه باندې دې اتلس کالونه په دې تکليف کښې اخته دې اوالله تعالى په دې باندې رحم نه کوى.هغه دويم کس مابنام دحضرت ايوب ﷺ ته ددې خبرې ذکراوکړو.په دې باندې ايوب ﷺ ډيرسخت خفه شواواوئې فرمائيل چه ماته پته نه لږى چه هغه داسې

ولې ونيلې دي؟الله تعالى ته ښه پته ده چه مابه دوه کسان په جهګړه باندې اوليدل اوهغوى به مينځ ته الله تعالى راوستونوزمابه دانه وه خوښه چه دالله تعالى نوم دې داسې يادکړې شي،ځکه چه په دواړوکښې به يوضرورمجرم وى اودواړه دالله تعالى نوم اخلى.مابه دخپل ځان نه هغوى ته څه ورکړل اودهغوى جهګړه به مې ختمه کړه چه دالله تعالى دنوم بې ادبى اونشى.ايوب ﷺ به هغه وخت ګرځيدې بلکه پاسيدې هم نه شو.دمتيازونه پس به خپلې بى بى واپس راوستلو.يوځل هغه نه وه اوايوب ﷺ ته سخت تکليف وو،هغوى په دغه ورځ باندې الله تعالى دخپل صحت دپاره دعااوکړه.دالله تعالى دطرف نه وحى اوشوه چه خپله خپه په زمکه باندې اووهه. ډيروخت پس چه دهغوى بى بى صاحبه ﷺ راغله نوڅه وينى چه بيمارخاوندخونې نشته اوڅوك تندرست نورانى شكل والاسړې ناست دې.اوئې نه پيژندلواوتپوس ئې ترې اوکړو،چه ائې دالله نيك بنده ادلته دالله تعالى يونبى چه هغه په درداوتکليف کښې اخته وو،هغه موليدلې دې؟والله چه هغه کله جوړوونولړلړدستاپه شان وو.ايوب ﷺ اوفرمائيل هغه هم زه يم.روايت کونکې فرمائى چه دايوب ﷺ دوه کورونه وو،يودغنمودپاره اويودجواردپاره.الله تعالى دوه وريځې راوليږلې يوې نه سره راوريدل يوکوردهغې نه دغلې ډك شواوبه بل کښې هم سره اووريدل اودويم هم ډك شو(¹).(ابن جرير)

صحيح بخارى کښې دى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه حضرت ايوب ﷺ بربنډلامبل چه داسمان نه دسرو ملخانو باران شروع شو،ايوب ﷺ هغه زرزرپه خپلوکپړوکښې راټولول شروع کړل،نوالله تعالى ورته اوازورکړوچه ائې ايوب!اماته دټولونه غنى نه ئې پيداکړې اوته مې بې پرواه نه ئې ساتلې.ايوب ﷺ جواب ورکړوچه بالکل تاماته ډيرڅه راکړى دى.زه دټولونه غنى اوبې نيازه يم،خودستادرحمت نه بې نيازه نه يم.بلکه ددې پوره محتاج يم(²).نوالله تعالى دې صبرکونکى پيغمبرته نيکې بدلې اوبهترينه جزاورکړه.اولادئې هم ورکړواودهغوى په شان ئې نورهم ورکړل. بلکه دحضرت قتاده ﷺ نه روايت دې چه مړه شوى اولادئې بياراژوندى شول اودهغوى نه ئې نورهم زيات ورکړل.داوودالله تعالى رحم کوم چه هغه ته دهغه په صبر،اوالله تعالى طرف ته رجوع کولو او د عجز او انکسارئ په بدله کښې ملاوشو.اودعقل لرونکودپاره عبرت اونصيحت دې چه هغوى پوهه شى چه دصبرانجام ښه،ارام اوسکون وى.

**د ايوب ﷺ د قسم متعلق احاديث**:: دبعضې خلقوبيان دې چه حضرت ايوب ﷺ دخپلې ښځې دڅه کار په وجه باندې دهغې نه خفه شو.بعضې وائى چه هغې به دخپلوويختويوه حصه خرڅوله اودهغه دپاره به ئې ډوډئ راوړله په دې خبره باندې خفه شواوقسم ئې اوخوړلوچه دتندرستئ نه پس به ئې سل کوړې وهم.خوداسې نيکه ښځه ددې سزاقابله نه وه کومه چه ورته حضرت ايوب ﷺ ورکول غوښتل.چه کومې ښځې دهغه خدمت اوکړوکله چه بل څوك ملګرې نه وو،په دې وجه باندې رب العالمين اوارحم الراحمين په هغې باندې رحم اوکړواوخپل نبى ته ئې حکم اوکړوچه خپل حکم پوره کولودپاره دکهجورې يوښاخ واخله چه په هغې کښې سل پاڼړې وى اوهغې باندې ئې يوځل اووهه. داسې کولوسره به دې قسم پوره شى اوداسې صبرکونکې اوشکرکونکې ښځې ته سزاهم ورنه کړې شى.هم دغه دالله تعالى دستوردې چه هغه خپل نيك بنديان کوم چه دهغه نه ويريږى،دبدونه محفوظ ساتى.بياالله تعالى دحضرت ايوب ﷺ ثناء اوصفت بيانوى چه هغه مونږډيرصبرکونکې اوضبط کونکې اوموندو،اوهغه ډيرنيك اوښه بنده وو.دهغه په زړه کښې زمونږښتونې مينه وه.هغه زمونږ طرف ته ښکته کيدواوزمونږسره ئې مينه وه.په دې وجه باندې دالله تعالى فرمان دې،چه څوك دالله

---

¹) الطبرى :۲۱/۲۱۱.

²) صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى(( وايوب اذ نادى ربه انى مسنى......)) :۳۳۹۱. احمد:۲/۳۱٤.

تعالی نه ویرېږي الله تعالی دهغه دپاره دخلاصي لارپیدا کړي اوهغه ته دداسې ځاني نه رزق ورکوي چه هغه دهغه په خیال کښي هم نه وي.په الله تعالی باندې توکل کولودپاره الله تعالی کافي دی.الله تعالی خپل کارپوره کوي.الله تعالی دهریوڅیزدپاره یوانداز مقرر کړی دی.پوهه عالمانوددې ایت نه ډیري ایماني مسئلې وغیره ویستلي دي.والله اعلم.

وَاذْكُرْ عِبٰدَنَآ

| اویادکړه | بندګان زمونږ

| او زمونږ بندګان

اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ اُولِي الْاَيْدِيْ وَالْاَبْصَارِ۝ اِنَّآ

ابراهیم | او اسحاق | او یعقوب | خاوندان دلاسونو | او دسترګو | بیشکه مونږ

ابراهیم ؑ او اسحاق ؑ اویعقوب ؑ یاد کړه | چي د (مضبوطو) لاسونو اود (سترګو) خاوندان وو

اَخْلَصْنٰهُمْ بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ۝ وَاِنَّهُمْ

خالص کړي وو هغوئ | په خالص صفت سره | یعني یادول دکور دآخرت | او بیشکه هغوئ

مونږ هغوئ په یو خاص فضیلت سره مخصوص کړي وو | چي هغه داخرت یادساتنه ده | دغه خلق

عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْاَخْيَارِ۝ وَاذْكُرْ اِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ

زمونږ سره | دغوره کړي شوو | نیکانو خلقو نه وو | او یاد کړه | اسماعیل | او الیسع

مونږ منتخب شوي او نیکان خلق دي | ..........او اسماعیل ؑ او یسع ؑ

وَذَا الْكِفْلِ ۭ وَكُلٌّ مِّنَ الْاَخْيَارِ۝ هٰذَا ذِكْرٌ ۭ وَاِنَّ

او ذوالکفل | او دا ټول | دنیکانو خلقو نه وو | دا یو ذکر وو | او بیشکه |

اوذوالکفل ؑ هم یاد کړه | اودوئ ټول په نیکانو خلقو کښي شامل وو | داد نصیحت یو بیان اوشو

لِلْمُتَّقِيْنَ لَحُسْنَ مَاٰبٍ۝ جَنّٰتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً

دپاره دمتقیانو | خامخا ښه ځائي دروتلو دي | جنتونه دي | دهمیشه استوګني | پرانستي شوي به وي

اوپرهیزګانو دپاوه ډیر ښه ځائي د ورتلو دي | ..........د همیشه اوسیدو باغونه دي

لَّهُمُ الْاَبْوَابُ۝ مُتَّكِـِٕيْنَ فِيْهَا يَدْعُوْنَ فِيْهَا

دپاره دهغوئ | دروازې (دهغې) | ډډې وهونکي به وي | په هغې کښي | راغواړي به اپه هغې کښي

دکومو دروازې چي به دوئ دپاره پرانستي پرتي وي | دوئ به په دغه باغونو کښي ډډې وهلې وي

بِفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ وَّشَرَابٍ۝ وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ

میوې ډیري | او شربتونه | اووی به دهغوئ سره | ښکته کتونکي (شرمنده) |

اوډیري میوې اوشربتونه به راغواړي | ..........اوورسره به (دحیا نه) سترګي ټیټي

| الطَّرْفِ أَتْرَابٌ | هٰذَا مَا | تُوعَدُونَ | لِيَوْمِ الْحِسَابِ |
| --- | --- | --- | --- |
| همزولي ښځې | دا هغه څيزونه دي | چي وعده ئې كيږي له تاسو سره | دپاره دورځي دحساب |
| سانونكي همزولي ځينكن ناستي وي | دا هغه نعمتونه دي | چي تاسو سره دحساب دورځي دپاره دهغې وعده كيږي | |

| إِنَّ هٰذَا | لَرِزْقُنَا | مَا لَهُ | مِنْ نَفَادٍ |
| --- | --- | --- | --- |
| بيشكه دا | رزق زمونږ دی | چی نشته دي لره | ختميدل |
| دا زمونږ هغه وركړه ده | چې د هغې هيڅكله خلاصي نشته | | |

**قوله تعالى:: وَاذْكُرْ عِبٰدَنَآ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ**
**دحضرت ابراهيم ﷺ اودحضرت اسحاق ﷺ ذكر** الله تعالى دخپل عبادت ګذارو او رسولانو د فضيلتونو ذكركوی،دهغوی نومونه اخلی.ابراهيم،اسحاق، اويعقوب عليهم الصلوٰة والسلام.اوفرمانی چه دهغوی عملونه ډيرښه وواوصحيح علم ئې هم لرلو.اودالله تعالى عبادت كونكی اودالله تعالى دطرف نه هغوی ته بصيرت هم وركړې شوې وو.په دين كښې پوهه وو.دالله تعالى په بندګۍ كښې بې انتها استقامت والاوو.حق ليدونكی وو.دهغوی په نزددنياځه اهميت نه وو،اوصرف داخرت خيال به ورسره هروخت وو.هريوعمل ئې داخرت دپاره وو.ددنيادمحبت نه هغوی لرې اوداخرت په ذكركښې مشغول وو.هغه عملونه به ئې كول كوم چه جنت ته بوتلووالاوو.خلقوته به ئې هم دنيك عملونوترغيب وركولو.هغوی ته به الله تعالى هم دقيامت په ورځ ښه بدله اولوې مقام وركړی.دا د دين بزرګان دالله تعالى مخلص اوخاص بنديان وو.اسماعيل،اليسع،اوذوالكفل صلوات الله وسلامه عليهم اجمعين هم خوښ اوخاص بنديان وو.دهغوی حالات په سوره انبياء كښې تيرشوی دی خكه ئې مونږدلته نه بيانوو.په فضليتونو كښې دهغوی دپاره نصيحت دې څوك چه نصيحت حاصلولواودقبلولوعادت وی.اوداهم مطلب دې چه قران عظيم ذكريعنی نصيحت دې.
**قوله تعالى:: جَنّٰتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْاَبْوَابُ**
**دجنت نعمتونه:** دنيك،اوتقوی والاخلقودپاره په اخرت كښې څومره پاك اوخائسته خانې دې.دهميشه والی جنت دې چه دهغې دروازې به دوی دپاره نه بنديږی بلكه هروخت به كهلاووی دكهلاوولوزحمت به هم نه وی پكار.رسول الله ﷺ فرمانی چه په جنت كښې يومحل عدن دې چه دهغې اخوا ديخوا برجونه دی.اودهغې پنځه زره دروازې دی اوپه هريودروازه باندې پنځه زره څادرونه دی.په دې كښې به صرف نبی ﷺ،ياصديق ؓ،ياشهيد ياانصاف كونكې بادشاه وی. (ابن ابی حاتم)
**د جنت اته دروازې دی** ::اوداخوبالكل دواضح حديث نه ثابت دی چه دجنت اته دروازې دی.په خپلو تختونو باندې به ئې پرلتونه وهلی وی اوپه ارام سره به ناست وی اوچه كومې ميوې ياكوم قسم شرابو ته ئې زړه اوشی حكم سره به ئې ورته خدمت كونكی په ادب سره پيش كړی.هغوی سره به دهغوی ښځې وی چه هغوی عفيفه ،صفا اوښكته نظرونووالاوی اودهغوی سره به مينه اوعشق كوی.چه د هغوی سترګوبه چرې هم بل چاته نه وی كتلې.دهغوی هم عمره اودهغوی دعمرلاتقې به وی.ددې صفتونووالاجنت وعده الله تعالى نه د ويريدنكو بنديانوسره الله تعالى كړې ده.دقيامت په ورځ به دوی دهغې وارثان اومالكان وی. او د قبرونو نه پاسيدوسره،داورنه خلاصی موندلو،دحساب نه فارغ كيدوسره به دلته لاړشی اوارام سره به اوسيږی.دادې زمونږ انعام چه په هغې كښې به كله هم كمې نه راځی اونه به داختميږی.څنګه چه فرمائيلی دی.﴿مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ﴾ تاسوسره چه څه دی هغه ختميږی اودالله تعالى سره چه څه دی هغه باقی پاتې كيدووالادی.اوپه ايت كښې غير مجذوذ دی

اوبل خائې کښې (غَيْرَ مَمْنُونٍ) هم دی.مطلب داچه نه به په هغې کښې کمې اونقصان راځی ارنه به هغه ختمیږی.څنګه چه ارشادشوې دې.(اُكُلُهَادَآبِمٌ وَّظِلُّهَا) دهغې میوې اوخوراکونه اوسورې همیشه دپاره دی د پرهیزګارانو انجام هم دغه شان وی اودکافرانو انجام دوزخ دې.ددې مضمون نورهم ډیرایتونه دی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | هٰذَا | | وَإِنَّ |
| | | \| دادې (متقیانولره) \| | | او بیشکه |
| | | \| داخبره خو اوشوه \| | | ..................او |
| يَصْلَوْنَهَا | جَهَنَّمَ | لَشَرَّ مَاٰبٍ | | لِلطّٰغِيْنَ |
| چې سوزی به په هغې کښې \| | دوزخ \| | ډیر بد ځائې دې داوسیدو \| | | دپاره دسرکشو خلقو \| |
| | | د سرکشو خلقو دپاره ډیر خراب ځائې دې یعنی دوزخ \| چې دوئ په ورته ننوځی | | |
| حَمِيْمٌ وَّغَسَّاقٌ | فَلْيَذُوْقُوْهُ | هٰذَا | الْمِهَادُ | فَبِئْسَ |
| اووینې زوې \| | پس اوڅکی دوئ دا \| یشیدلې اوبهٔ \| | دا (عذاب) دې \| | ځائې دقرار \| | پس ډیر بد دې \| |
| | | نوهغه ډیر خراب ځائې دې \| داویشدلې اوبه او زوې (نو) دی \| نودوئ دې اوس ددې مزه اوڅکی | | |
| مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ | هٰذَا فَوْجٌ | اَزْوَاجٌ | مِنْ شَكْلِهٖ | وَّاٰخَرُ |
| چې ننوتونکې دې استاسو سره | دا یو لښکر دې \| | ډیر قسمونه دعذاب \| | دقسمه ددې نه \| | او نور \| |
| | | اودغسې نور ډیر ځیزونه دی \| دایوه بله ډله تاسو سره داخلیږی \| دوئ دې هیڅکله هم | | |
| قَالُوْا | صَالُوا النَّارِ | اِنَّهُمْ | بِهِمْ | لَا مَرْحَبًا |
| او به وائی هغوئ \| | سوزیدونکی دی په اور کښې \| | بیشکه دوئ \| | دپاره ددوئ \| | نشته پخیر راغلې \| |
| | | خوشحاله نه وی \| ...........دوئ په دوزخ کښې پریوتونکې دی \| ...........هغوئ به وائی چې | | |
| قَدَّمْتُمُوْهُ | اَنْتُمْ | لَا مَرْحَبًا بِكُمْ | | بَلْ اَنْتُمْ |
| | | بلکه تاسو سوزئ \| هیڅ پخیر راغلې نشته دپاره ستاسو \| هم تاسو راوړاندې کړې دی دا عذاب | | |
| | | نه بلکه هم ستاسو دې هیڅکله خوشحالی نصیب نشی \| هم تاسو خوراته دا (دوزخ) رامخکښې کړې وو | | |
| رَبَّنَا | قَالُوْا | الْقَرَارُ | فَبِئْسَ | لَنَا |
| اے ربه زمونږه \| | اوبه وائی هغوئ \| | ځائې دقرار \| | پس ډیر بد دی \| | مونږ ته \| |
| | | دا ډیرد استوګنې ډیر خرابه ځائې دې \| ...........هغوئ به اووائې چې ائې زمونږ ربه | | |
| عَذَابًا ضِعْفًا | فَزِدْهُ | هٰذَا | | مَنْ قَدَّمَ لَنَا |
| عذاب دوچند \| | پس زیات ورکړه هغه ته \| | دا انجام \| | | چاچې مخکښې تیار کړې دی دپاره زمونږ \| |
| | | دامصیبت چې مونږ ته چا راوړاندې کړې دې \| هغه ته په دوزخ کښې دوچنده عذاب ورکړه | | |
| رِجَالًا | لَا نَرٰى | مَا لَنَا | وَقَالُوْا | فِي النَّارِ |
| هغه سړی \| | چې نهٔ وینو \| | څه شوی دی مونږ لره \| | اوبه وائی په خپل منځ کښې \| | په وور کښې \| |
| | | ...........او وائی به چې څه خبره ده \| چې مونږ هغه خلق دلته نه وینو | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كُنَّا | نَعُدُّهُمْ | مِّنَ الْأَشْرَارِ | أَتَّخَذْنٰهُمْ | سِخْرِيًّا | |
| چې وو مونږه | چې شمارل به مونږ هغوئ | دناكاره خلقو نه | آيا نيولي وو مونږ هغوئ | په توقو سره | |
| كوم چې به مونږ په شريرو خلقو كښې شميرل | دا مونږ ورپورې هسې توقې كولې كه نه | | | | |
| أَمْ زَاغَتْ | عَنْهُمُ | الْأَبْصَارُ | إِنَّ | ذٰلِكَ | لَحَقٌّ |
| او كه كږې شوې | دهغوئ نه | سترګې زمونږ | بيشكه | دا خبره | خامخا حقه ده |
| زمونږ نظرونه هغوئ نه اوړيدلې رااوړيدلي دي | بيشكه ددوزخيانو مينځ كښې | | | | |
| تَخَاصُمُ | أَهْلِ النَّارِ | قُلْ | إِنَّمَا | أَنَا مُنْذِرٌ | |
| ديو بل سره جګړه | ددوزخ والو | ورته اووايه | بيشكه | زهٔ يرونكي يم | |
| داجګړه بالكل حقه خبره ده | ته اعلان اوكړه چې زه خو صرف يو ويرونكي يم | | | | |

**قوله‌تعالى:: إِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُ مِن نَّفَادٍ**

**ددوزخ سختيانې:** په تيرشوى ايت كښې دنيكانوذكرشوې دې نوپه دې ايت كښې دبدكاروبيان فرمائي خوك چه دالله تعالى حكم نه منى،چه دهغوى دواپسئ ځائې ډيرخراب دې اوهغه دوزخ دې چه په هغې كښې به داخلق داخليږى اودخلوروطرفونه به دوى ددوزخ اورګيرکړى.داډيرسخت ځائې دې.«حميم» هغه اريوته وائى چه دهغې ګرم والى اوحرارت بې انتهاوى.نوبوطرف ته داورسخت عذاب اوبل طرف ته ديخنئ عذاب اودغه شان مختلف عذابونه،چه هغه ديوبل التيه وى.

**غساق څه څيز دې ::** مسنداحمدكښې دى چه رسول الله ﷺ فرمائى كه دغساق يوبالټې په دنياكښې توئ كړې شى نوټوله دنيابه دخراب بوئى والاشى. ([1])حضرت كعب احبار رحمه الله فرمائى چه دوزخ كښې غساق نومې يونهردې چه په هغې كښې دمارانو او لړمانانو زهروغيره جمع كيږى بياهغه ګرم والى په وجه باندې پاخه شى.په دې كښې دوزخيانوته غوټې وركولې كيږى اوپه هغې كښې به دهغوى ټوله غوښه ونيلى شى اوپنډوپورې به وينځلى.چه هغه به هغوى داسې راكاګى لكه يوكس چه خپلې جامې شلوى.(ابن ابى حاتم)

**قوله‌تعالى:: لَا مَرْحَبًا بِكُمْ**

**د دوزخيان يو بل سره جنګ::** يعنى ديخنئ عذاب به بيل وى اودګرمئ عذاب بيل.دځكلودپاره حميم اوخوړلو دپاره زقم.كله به داوربه غرونوباندې خيژولې شى نوكله به داوركندوته غورځولې شى الله تعالى دې مونږټول دعذاب نه بچ كړى.اوس ددوزخيانودجګړې اودهغوى دخبروبيان كيږى څنګه چه په يوبل ايت كښې دى.(كُلَّمَا دَخَلَتْ) چه هره يوه ډله به په بل باندې دسلام په ځائې لعنت كوى،يوبل به دروغژن ثابتوى اوپه يوبل باندې به الزامونه لړوى.يوه ډله كومه چه به مخكښې دوزخ ته تلې وى هغه به بله ډله ددوزخ داروغه ته راتلوسره وينې نووائى به چه تاسوسره كومه ډله ده دوى ته مرحبامه وائې خكه چه داهم دوزخى ډله ده.هغه راتلونكى به دوى ته وائى چه دستاسودپاره دې مرحبانه وى هم تاسوخوبه خرابوكارونوته خلق رابلل،چه دادهغې انجام دې.نوخراب منزل دې.بيابه وائى چه انې الله تعالى!چاچه زمونږدپاره دځائې جوړكړوته دهغوى عذابونه يوپه دوه كړه.څنګه چه فرمان دې.(قَالَتْ أُخْرٰىهُمْ لِأُولٰىهُمْ رَبَّنَا هٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا) يعنى روستوبدكاره خلق به ړومبى بدكاره خلقوپه باره كښې عرض كوى

---

[1] ترمذى كتاب صفة جهنم باب ماجاء فى صفة شراب اهل النار: ۲۵۸٤.

چه انې الله تعالی! مونږهم دوی گمراه کړي یو،نوته ددوی عذابونه زیات کړه.الله تعالی به فرمائی دهریودپاره زیات دی.خو تاسوته پته نشته.یعنی دهریودپاره داسې عذاب دې چه هغه دهغه دپاره کافی دې.اوکافران به هلته مومنان نه وینی چه هغوی به دهغوی په خیال کښی دهوکه شوی وو.نوپخپلوکښې به ذکرکوی چه ددې څه وجه ده چه مونږته مسلمانان په دوزخ کښی نه ښکاری؟

حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چه ابوجهل به وائی چه بلال،عمار اوصهیب وغیره کوم ځائې دی؟هغوی خونه ښکاری.([1])غرض داچه دهرکافربه هم داوائی چه هغه خلق چاته به چه مونږپه دنیاکښی وران خلق وئیل هغه نن په نظرنه راځی.دازمونږغلطی وه چه هغوی به مونږپه دنیاکښی صحیح نه گڼړل اوهغوی پسې به موټوقې کولې؟زمونږدامعامله هغوی سره صحیح وه اوهغوی به په دوزخ کښی وی خوداسې ځائې کښی به وی چه مونږته نه ښکاری.دغه وخت کښی به دجنتیانودطرف نه اوازراشی چه انې دوزخیانو! دیخوا اوگورئ،مونږخودخپل رب وعده رښتیاکیدل اولیدل.تاسوخپله وائې.دالله تعالی وعدې رښتیاشوې؟دوی به جواب ورکړی هوبالکل رښتیاشوې.دغه وخت کښی به یواوازکونکې اووائی چه په ظالمانودې دالله تعالی لعنت وی.هم ددې بیان دقران په ایت کښی د﴿وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِ﴾ نه دآیت﴿وَلَآ أَنتُمۡ تَحۡزَنُونَ﴾ پورې دې.بیافرمائی چه اې نبی(ﷺ)چه کوم خبرزه تاته درکوم چه دوزخیان به په دې خبروباندې جهگړې کوی اوپه خپلوکښی به یوبل ته خبرې کوی،دابالکل صحیح اوټهیك خبردې. چه په دې کښی څه شك نشته.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلۡ | إِنَّمَآ | أَنَا۠ مُنذِرٞۖ | وَمَا مِنۡ إِلَٰهٍ | |
| ورته اووایه | بیشکه | زهٔ یرونکې یم | او نشته څوك معبود | |
| ته اعلان اوکړه چې زه خو صرف یو ویرونکې یم \| او د یو غالب | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَّا ٱللَّهُ | ٱلۡوَٰحِدُ | ٱلۡقَهَّارُ | رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ | وَٱلۡأَرۡضِ |
| سوا دالله نه | چې یو دې | په ټولو غالب دې | چې رب دآسمانونو | او دزمکې دې |
| الله ﷻ نه سوا بل هیڅوک معبود نشته \| .....................هغه دآسمانونو او دزمکې اود دې دواړو | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَا بَيۡنَهُمَا | ٱلۡعَزِيزُ | ٱلۡغَفَّٰرُ | قُلۡ |
| او دهغه څه چې په منځ ددې دواړو کښی دی | چې غالب دې | ښښونکې دې | ورته اووایه |
| په مینځ کښې چې څه دی دټولو څیزونو رب دې \| زبردست دې ډیرښښونکې دې \| ته ورته اووایه | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هُوَ نَبَؤٌاْ | عَظِيمٌ | أَنتُمۡ | عَنۡهُ | مُعۡرِضُونَ | مَا كَانَ لِيَ | مِنۡ عِلۡمِۭ |
| دا یو خبر دې | لوئ | . تاسو | ددې نه | مخ اړونکې یئ | نه وو ماته | هیڅ علم |
| هغه (قیامت) یولوئې خبر دې \| دکوم نه چې تاسو مخ اړوئ \| ماته د برنئ دنیا د فرښتو هیڅ څیز | | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِٱلۡمَلَإِ ٱلۡأَعۡلَىٰٓ | إِذۡ | يَخۡتَصِمُونَ | إِن يُوحَىٰٓ إِلَيَّ | إِلَّآ |
| په ډله لویه (دفرښتو) باندې | کله چې | هغوئ جگړه کوله | نهٔ کیږی وحي | ماته \| مګر په دې وجه |
| خبر نه وو \| هرکله چې هغوئ په خپل مینځ کښې(په پیدا ونښت دادم ﷺ) بحث کولو \| ماته خودوحي په ذریعه | | | | |

---
[1]) الطبری :۲۱/۲۳۲.

| | | |
|---|---|---|
| اِنَّمَآ | اَنَا | نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ |
| چې بيشکه | زه | يرونکې يم ښکاره |

صرف داخودلې شي اچې زه ښکاره ويرونکې يم

قوله تعالى:: قُلْ اِنَّمَآ اَنَا مُنْذِرٌ

دنبی کريمﷺ باره کښې دکافرانو غلط خيال او دهغه جواب::الله تعالى نبیﷺ ته حکم کوی چه کافرانوته اووايه چه زماباره کښی دستاسوخيالونه غلط دی،زه خوتاسوته دويرې خبر رارسولو والا يم. او الله تعالى يواځې دې اودهغه شريك څوك نشته اودهغه نه علاوه څوك دعبادت لائق هم نشته.هغه يواځې دې اوپه هرڅيزباندې غالب دې،هريوڅيزدهغه ماتحت دې.هغه دزمکې اسمان اودهرڅيزمالك دې او دې کښی هرڅه دهغه په قبضه کښی دی.هغه دعزتونووالادې اوددې عزتونوسره هغه بخښلو والا دې.

قوله تعالى:: قُلْ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيْمٌ

دنبیﷺ يوخائسته خوب ::داډيرلوې څيزدې يعنی زمادرسول په حيثيت باندې تاسوته راتلل.خوتاسوائې غافلانو!زمابيان کړی حقيقتونونه انکار کوئ ،داهم ونيلی شوی دی چه داډيرلوې څيزدې،يعنی قران.دحضرت ادمؑ باره کښی د فرښتو مينځ کښی څه اختلاف ووکه دالله تعالى وحی ماته نه وې راغلې نوماته به دهغې باره کښی څه علم وې؟ د ابليس ادمؑ ته سجده نه کول اودالله تعالى مخکښی دهغې مخالفت کول اودخپل خان لوې والی بيانول وغيره.داټولې خبرې به ماته څنګه معلومې شوې وې؟

مسنداحمدکښی دی چه يوه ورځ دسحرپه مونځ کښی حضورﷺ ډيرناوخته کړو،ترڅې چه د نمر راختلو وخت شو.بيائې زرزرتشريف راوړاوتکبيرئې اووئيلواوحضورﷺ سپك مونځ اوکړو.دهغې نه پس ئې مونږته اوفرمائيل،چه لږساعت صبراوکړئ.بيائې مونږته اوفرمائيل،بيګاه مادتهجدمونځ کولوچه ماته خوب راغې،ترڅې چه زه راويښ شوم اوماوئيل که زه دخپل رب سره يم.ماخپل رب په ډيرخائسته حالت کښی اوليدو.ماته الله تعالى اوفرمائيل، تاته پته لږی داسمانونوفرښتې اوس دڅه باره کښی تپوسونه کوی؟ ماعرض اوکړوائې زمارب! ماته څه پته ده؟دړې ځله دسوال اوجواب نه پس ماوليدل چه زما ددواړو اوږو مينځ کښی الله تعالى خپل لاس کيخودو،ترڅې چه دګوتويخوالې ماپه سينه کښی محسوس کړو،اوپه ماباندې هريوڅيزښکاره شو.بيائې ماته اوفرمائيل اوس وايه ملاءعلى کښی څه خبرې کيږی؟ماووئيل دګناهونودکفارې باره کښی.اوئې فرمائيل اووايه کفاره څه څه ده؟ماووئيل د جمع مونځ دپاره قدمونه اخستل،دمونځ نه پس په جماتونوکښی کيناستل اودزړه نه غوښتلوسره هم پوره اودس کول.بيامانه زمارب تپوس اوکړو.درجې څه دی؟ماووئيل په چاډوډئ خوړل،په خبروکښی نرمی اختيارول.اودشپې چه کله خلق اوده وی مونځ کول.اوس ماته خپل رب اووئيل چه اوغواړه څه غواړې؟ماووئيل،چه زه غواړم،نيکئ کول،دخرابئ پريخودل،دغريبانانوسره مينه کول،اوستابخښنه او رحم اوچه کله ستااراده په يوقوم باندې دفتنې وی نوپه هغه فتنه کښی داخته کيدونه مخکښی مرګ او ستامينه اوتاسره دمينه کونکومينه اودهغې کارونومينه کوم چه تاته نزدې کولووالاتی.ددې نه پس حضورﷺ اوفرمائيل چه داباالکل ربښتيادی،داوايئ اوخلقوته ئې هم ښايئ.(۱)داحديث دخوب دې او مشهورهم دې.بعضې وائی چه دويخې دحالت واقعه ده،خوداغلطه ده اوصحيح داده چه داخوب دې او دا خيال هم دې چه دفرښتوپه قران کښی ردوبدل کومه خبره دې ايت کښی شوې ده هغه دانه ده،کومه

۱) ترمذی کتاب تفسير القرآن باب ومن سورة صاد: ۳۲۳۵. وسنده حسن.

چه دي حديث کښې بيان شوې ده.اوداسوال اوجواب هغه دی چه دکومې ذکريه ددې نه پس دې
راتلونکې ايتونه اولولئ:

إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي
| کله چې اوونيل | رب ستا | فرښتو ته | بيشکه زه |
| هر کله چې ستارب فرښتو ته اوونيل | چې زه د

خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّن طِينٍ ۝ فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ وَنَفَخْتُ
جوړونکې يم | ديو بشر | دختې نه | پس هر کله چې | زه پوره جوړ کړم هغه | او پوک وهم زه |
ختې نه انسان جوړول غواړم | بيا هر کله چې زه هغه پوره کړم | او د خپل طرف نه په کښې روح

فِيهِ مِن رُّوحِى فَقَعُوا۟ لَهُۥ سَٰجِدِينَ ۝ فَسَجَدَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ
په هغه کښې | د روح خپل نه | نوپريوزئ | هغه ته | سجده کونکې | پس سجده اوکړه فرښتو |
پوک وهم | نو تاسو ټول هغه ته په سجده پريوځئ | نو ټولو فرښتو په جمع

كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ۝ إِلَّآ إِبْلِيسَ ٱسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ۝
ټولو په جمع سره | مګر اونه کړه ابليس | لوئي ني اوکړه | او وو دې | د کافرانو نه |
سجده اوکړه | خو يو ابليس اونه کړه |......... ځان ئي لوئي اوګڼړلو | او د کافران ځنو شو

قَالَ يَٰٓإِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَن تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ
اوونيل الله | اے ابليسه | څه څيز منع کړې ته | چې تا سجده کړې وې | هغه چاته | چې جوړ کړې دې ما
(الله ﷻ) تپوس کوی چې انې ابليس ته څه څيز هغه ته د سجدې کولو نه منع کړې | ځوک چې

بِيَدَىَّ ۖ أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنتَ مِنَ ٱلْعَالِينَ ۝ قَالَ
په لاسونو خپلو سره | آيا تکبر اوکړو تا | يا ني ته | دلويو خلقو نه | اوونيل ابليس |
ما په خپلو لاسونو جوړ کړې دې . | آيا ته په تکبر کښې راغلې ايا ته د مرتبې خاوند يې | ابليس اوونيل

أَنَا۠ خَيْرٌ مِّنْهُ ۖ خَلَقْتَنِى مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُۥ مِن طِينٍ ۝ قَالَ
زه بهتريم ددهٔ نه | تاپيدا کړې يم زه | دوور نه | او پيدا کړې د دې هغه | د ختې نه | اوونيل الله
زه ده نه بهتر يم | تا زه د اور نه پيدا کړې يم | او دې دې د ختو نه پيدا کړې دې | حکم اوشو

فَٱخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ۝ وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِىٓ
پس اوزه | ددې ځانې نه | پس بيشکه ته | رټلې شوې نې | او بيشکه | په تاباندې | لعنت زما دې
ددې دربار نه بهرته اوزه | ته رټلې شوې يې | او په تا باندې به تر ورځې دقيامت پورې

إِلَىٰ يَوْمِ ٱلدِّينِ ۝ قَالَ رَبِّ فَأَنظِرْنِىٓ إِلَىٰ يَوْمِ
دورځې دجزا پورې | اوونيل ابليس | اے ربه زما | پس مهلت راکړه ماته | دهغه ورځې پورې |
زما لعنت وريږي | هغه اوونيل چې انې زما ربه ! ماته ترهغې ورځې پورې مهلت راکړه

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُبْعَثُوْنَ۝ | قَالَ | فَاِنَّكَ | مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ۝ |
| چي دوباره به راپاسولي کيږي خلق | اوونيل الله | پس بې شکه ته | دمهلت ورکړي شوؤ نه ئې |
| چي مړي به دوباره راپاځولي شي \| الله ﷻ اوونيل څه تاته مهلت دی | | | |
| اِلٰى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُوْمِ۝ | قَالَ | فَبِعِزَّتِكَ | |
| دورخې دوخت معلوم پورې | اوونيل ابليس | پس قسم دی په عزت ستا | |
| ديو ټاکلي ورځي پورې \| ........(ابليس) اوونيل چي ستا په عزت مې دې قسم وی | | | |
| لَاُغْوِيَنَّهُمْ | اَجْمَعِيْنَ۝ | | |
| خامخا زۀ به دوکه کوم دا خلق | ټول | | |
| زۀ به دوئ ټول گمراه کوم \| | | | |

کله چه ستارب فرښتوته اوفرمائيل چه دخاورې نه انسان پيداکوم،اوچه کله زه هغه جوړکړم اوپه هغې کښې خپل روح واچوم نوتاسوهغه ته سجده اوکړئ.نوټولوفرښتوسجده اوکړه اوابليس اونه کړه،هغه کبراوکړواوهغه خوپه کافرانوکښې وو.الله تعالى ابليس ته اوفرمائيل ابليس!تاولې ده ته سجده اونه کړه ځوك چه ماپخپلو لاسونوپيداکړو.ولې تاته خان اوچت ښکاری؟ياته دلو يو د رجو والاتې؟هغه جواب ورکړوچه زه دده نه ډيرښه يم،تازه داورنه پيداکړې يم،اودې ئې دخاورې نه پيدا کړو. ارشاد اوشو چه ته ددې ځائې نه اوځه ته مردودشوې. اوپه تاباندې دې دقيامت پورې زمالعنت وی.اونې ونيل انې زما رب!ماته دخلقودبياپاسيدوورځې پورې مهلت راکړه،الله تعالى ورته اوفرمائيل ته دمهلت والا خلقوکښې ئې.دمقررشوی تاريخ پورې.نواونې ونيل چه دستاپه عزت مې قسم زه به دوی ټول دهوکه کړم سوادهغه خلقونه کوم چه خاص بندګان دی.اونې فرمائيل چه ته رښتياوانې اوزه رښتياکوم،زه به ستااوستامنلووالونه دوزخ ډك کړم.

قوله تعالى::اِذْقَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّىْ خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ طِيْنٍ۝

دادم ﷺ **دپيدائش ذکر**:داقصې په سوره اعراف،سوره حجر،سوره سبحان،سوره کهف اوپه سوره (ص) کښې بيان شوې ده.دحضرت ادم ﷺ دپيدائش نه مخکښې الله تعالى فرښتوته خپله اراده بيان کړه چه زه دخاورې نه انسان پيداکوم.چه کله زه هغه پيداکړم نوتاسوبه هغه ته سجده اوکړئ چه زما د فرمانبردارئ سره د(حضرت)ادم دشرافت اوبزرګئ اظهارهم اوشي.نوټولوفرښتوحکم اومنلو اوابليس ارنه منل چه دې دفرښتودجنس نه نه وو،بلکه په جناتو کښې وو.فطرتی خبائث اوسرکشی ئې ښکاره شوه.سوال ترې اوشوچه دومره عزت داره مخلوق چه هغه ماپه خپل لاسونوباندې جوړکړو،تازمادحکم نه پس هم سجده ولې اونه کړه؟داکبراوداسرکشی؟نواونې ونيل چه زه افضل اواعلى يم،چرته دخاورې جوړاوچرته داور؟دې خطاکونکی ددې په پوهيدوکښې غلطی اوکړه اودالله تعالى دحکم دمخالفت په وجه باندې غرق شو.حکم اوشوچه زما د مخې نه لرې شه زمادربارته ستا په شان نافرمانوراتلل نشته.اوس ته زمادرحمت نه لرې شوې اوپه تاباندې به داخرپورې لعنت وی اوته دخيرنه مايوس شد.هغه دالله تعالى نه دعااوکړه چه ماته دقيامت پورې مهلت راکړه هغه حليم الله تعالى چه کوم دخپل مخلوق په ګناهونوباندې هغوی هغه وخت نه نيسی اودهغوی سوال پوره کوی اودقيامت پورې ئې هغه ته مهلت ورکړو.اوس ئې اوونيل چه زه به دده ټول اولاددهوکه کوم.صرف مخلص خلق به بچ شی.الله تعالى ته داهم منظوروه.څنګه چه دقران کريم په نوروايتونوکښې دی.﴿قَالَ اَرَءَيْتَكَ هٰذَا الَّذِىْ كَرَّمْتَ عَلَىَّ﴾ الخ، او﴿اِنَّ عِبَادِىْ لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنٌ﴾ الخ،﴿قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ اَقُوْلُ۝﴾ الخ، لرهمجاهد دپيش سره ونيلې دې

معنی داده چه زه خپله حق یم اوزماخبره حق پکارده.په یوبل روایت کښې دهغه نه هم داسې روایت شوی دی چه حق زمادطرف نه دې اوزه هم حق وایم (١).نورودواړه لفظونه په زبرباندې ونیلی دی سدی رحمه الله وائی داقسم دې.(٢) زه وایم چه دایت دهغه ایت په شان دې.﴿وَلٰكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّيْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ﴾ یعنی زماقول اخری دې چه خا مخا به دوزخ دهغه قسمه انسانانواوپیریانونه ډک کړم.اوخنګه چه فرمان دې.﴿اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ﴾ کوم کس چه به ستااومنی هغه ته به پوره سزاورکړم.

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِنْهُمْ | | اِلَّا عِبَادَكَ | |
| دده‌وئ نه | | ماسوا دبندګانو ستا نه | |
| ستا د هغه بندګانو نه سوا کوم چې | | | |

| لَاَمْلَئَنَّ | وَالْحَقَّ اَقُوْلُ | فَالْحَقُّ | قَالَ | الْمُخْلَصِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| خامخا به زه ډک کړم | او حق خبره وایم زه | پس حقه خبره داده | اووئیل الله | چې خالص کړې شوی وی |
| اوزه خو تل رښتیا وایم \| چې | | الله ﷻ اوفرمائیل چې زه درته رښتیا وایم | | ستا مخلص دی |

| قُلْ | اَجْمَعِيْنَ | مِنْهُمْ | تَبِعَكَ | وَمِمَّنْ | مِنْكَ | جَهَنَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ورته اووایه | ټول | دده‌وئ نه | چې پیروی ئې اوکړه ستا | او دهغه چانه | ستانه | دوزخ |
| (ائې پیغمبره) ته ورته اووایه چې | | | زه به ستا نه اوستاد ټولومنونکو نه دوزخ ډک کړم | | | |

| مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ | وَّمَآ اَنَا | مِنْ اَجْرٍ | عَلَيْهِ | مَآ اَسْئَلُكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| دتکلیف کونکو (بناوټیانو) نه | اونه یم زه | څه اجر | په دې کار باندې | زه نه غواړم ستاسو نه |
| اونه زه تکلف کونکې یم | | زه ستاسونه په دې قران باندې هیڅ اجر نه غواړم | | |

| بَعْدَ حِيْنٍ | نَبَاَهٗ | وَلَتَعْلَمُنَّ | لِّلْعٰلَمِيْنَ | ذِكْرٌ | اِلَّا | اِنْ هُوَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس دځه مو دې نه | تاسو ته اخبر ددې | اوخامخا به معلوم شی | دپاره دخلقو | یو نصیحت دې | مګر | نه دې دا |
| اویقینی طور زر به دې خلقو ته ددې حقیت معلوم شی | | | دا خوددنیا خلقو دپاره یو نصیحت دې | | | |

**قوله تعالی:: قُلْ مَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ**

**د نبی کریم ﷺ دصداقت او حقانیت بیان:** الله تعالی خپل نبیﷺ ته حکم ورکوی چه په خلقوکښې ته اعلان اوکړه چه ددین په تبلیغ اودقران په حکمونوباندې دستاسونه څه مزدوری یابدله نه غواړم.ددې نه زمامقصدڅه د دنیا فائده حاصلول نه دی اونه زه تکلف کولووالایم چه الله تعالی نازل کړې نه وی اوزه نې اولیکلم.بلکه ماته چه څه رارسولې شی هغه زه تاسوته دررسوم،نه پکښې کمې کوم اونه زیاتې.اوزمادې نه مقصد صرف دالله تعالی رضااومرضی ده.حضرت عبدالله بن مسعودﷺ فرمائی خلقواچاته چه دیوې مسئلې علم وی هغه خلقوته بیان کړئ چه هغوی ته نه وی معلومه،اوالله تعالی ته هرڅه معلوم دی.اوګورئ الله تعالی خپل نبیﷺ ته هم په دې ایت کښې دغه ونیلی دی چه تکلف نه

(١) الطبری :٢١/٢٤٢.
(٢) الطبری :٢١/٢٤٢.

کوم.[1] داقران دټولو انساتلنو اوپیریانو دپاره نصیحت دې.اوځنګه چه په ایت کښې دی.﴿ لِأُنذِرَكُم بِهِ وَمَنۢ بَلَغَ ﴾ چه تاسو او کومو خلقو ته، به چه دارسې هوښیارکړم.اوپه ایت کښې دی چه ﴿وَمَن يَكْفُرْ بِهِ﴾ کوم کس چه به دې باندې کفر اوکړي هغه دوزخی دې.زمادخبروحقیقت.اوزمادکلام دتصدیق زمادبیان رښتیا والې ،زما د ژبې رښتیاوالې تاسوته به زرمعلوم شي.یعنی دمرګ نه پس،اود قیامت شروع کیدوسره.دمرګ په وخت کښې به مویقین اوشی اوزماونیلې شوې خبرې به مومخې ته راځی.والله اعلم بالصواب.

الحمدلله دالله تعالی په فضل اوکرم سره دسوره ص تفسیرختم شودالله تعالی په انعام اواحسان باندې دهغه شکردې.

دتفسیرابن کثیرداتم جلدترجمه ختمه شوه.اوس دنهم جلدترجمه شروع کیږی.الله تعالی دې مونږته دخپل پاك كلام ونیلو،پوهیدلواوپه دې باندې دعمل کولوتوفیق راکړی.آمین.

**تفسيرسورة زمر**

حضرت عائشه ﵂ فرمائی چه حضورﷺ به نفل روژې یوبل پسې داسې نیولې چه زمونږبه خیال ووچه اوس به حضورﷺ دانیول نه پریدی.

اوداسې به هم ووچه حضورﷺ به روژې نه نیولې تردې چه زمونږبه داخیال ووچه اوس به نې بالکل نه نیسی،اوهره شپه به حضورﷺ دسوره بقره اوسوره زمرتلاوت کولو([2]).

| ایاتونه | | سورة الزمر مكية وهي خمس وسبعون اٰية وثماني ركوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ٧٥ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | | ٨ |

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ①

نازنیدل | ددې کتاب | دطرفه دالله نه دی | چی غالب دې | دحکمت خاوند دې |

داکتاب دالله ﷻ د طرفنه نازل شوې دې اچې غالب دې صاحب د حکمت دې

اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ فَاعْبُدِ اللّٰهَ

بیشکه نازلې کړې دې مونږه | تاته | دا کتاب | دحق سره | پس بندګی کوه دالله |

مونږ دا کتاب په حق مضامینو مشتمل ستا طرفته نازل کړې دې | نوته په اخلاص سره دالله ﷻ

مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ② اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ

حال دا چی خالص کونکې نې | هغه لره | ددین (خپل) | خبردار | الله لره حق دی | دین خالص |

عبادت کوه | ...........................یادساته؛ خالصه بندګی هم دالله دپاره ده

وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ مَا نَعْبُدُهُمْ

اوهغه کسان اچی نیولی دی هغوی| غیر دالله نه |دوستان نور | وائی چی نه کوومونږ عبادت ددوی

اوچاچې دالله ﷻ نه سوا نور شریکان نیولی دی | ............................(اوداوائی) چې

---

[1]) صحيح بخاری كتاب التفسير صورة صاد باب قوله تعالى (( وما انا من المتكلفين)) :٤٨٠٩. صحيح مسلم:٢٧٩٨.

[2]) احمد:١٨٩/٦، ترمذی : كتاب فضائل القرآن باب قرءة سورة بنى اسرائيل والزمر: ٢٩٢٠. وسنده حسن.

اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى ؕ اِنَّ اللّٰهَ

مگر دپاره ددې چې نزدې کړي دوئ مونږه | الله ته | په نزدیکت سره | بیشکه الله

مونږ خو صرف الله تعالی د نزدیکت دپاره د دوی عبادت کوو | ...... ......... بیشکه الله

يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِيْ مَا هُمْ فِيْهِ

به فیصله کوی | په منځ ددوئ کښې | په هغه کارونو کښې | چې دوئ په هغې کښې

به د دوی په مینځ کښې په هغې خبرو کښې فیصله اوکړي په کومو کښې چې دوی اختلاف کولو |

يَخْتَلِفُوْنَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ كٰذِبٌ كَفَّارٌ ۝

اختلاف کوی | بیشکه الله | نه ښائی لار | هغه چاته | چې هغه دروغژن وی | ناشکره وی

......... | الله ﷻ هغه چاته هدایت نه کوی | چې دروغژن او انکار کونکې وی

لَوْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصْطَفٰى مِمَّا

| که اراده لرله الله | چې اونیسی | ځوئې | نو خامخا به ئې غوره کولې | :هغې نه |

که الله ﷻ ځانله اولاد نیول غوښتل | نو پخپل مخلوق کښې څوک چې ئې خوښ وو

يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۙ سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ

چې پیدا کوی ئې هغه | هغه چې ئې غوښتلې | پاکې ده هغه لره (ددې نه) | هغه الله | یو دې |

هغه به ئې منتخب کړې وو | هغه (الله) دپاره پاکی ده |....... هغه الله ﷻ یو ذات دې

الْقَهَّارُ ۝

غالب دې |

زبردست دې |

**قوله تعالى:: تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۝**

**د قران پاک د حقانیت بیان:** الله تعالی خبرورکوی چه داقران عظیم هم زماکلام دې اوهم ما نازل کړې دې. ددې په رښتیاوالی کښې څه شك اوشبه نشته.څنګه چه یوبل ځائې کښې ایت دې.﴿ وَاِنَّهٗ لَتَنْزِيْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝﴾دادرب العالمین دطرف نه نازل شوې دې.اوداروح الامین راوړلې دې.دستا په زړه باندې نازل کړې دې چه ته خلقوته رسولو والا جوړ شې. په صفااوځانسته عربئ ژبه کښې دې. اوایتونوکښې دې.دادعزت والاکتاب دې چه ددې دروستویامخې نه باطل راتلې نشې.داحکمت او تعریفونووالاالله تعالی دطرف نه نازل شوې دې.دلته ئې فرمائیلې دی چه داکتاب دډیرزیات عزت اوحکمت والاالله تعالی دطرف نه نازل شوې دې.چه هغه په خپلوقولونواوکارونو ،شریعت اوتقدیرکښې دټولو حکمتونو والادې

**قوله تعالى:: اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ**

**الله تعالی مالک اوعبادت لائق دې** مونږدستاطرف ته داکتاب دحق سره نازل کړو.تاته پکاردی چه پخپله دالله تعالی په توحیدکښې مشغول اوسې اونورخلق هم دې طرف ته رابلې.ځکه چه دالله تعالی نه علاوه چاته عبادت کول نه دی پکار.هغه لاشریك دې اوبې مثال دې دهغه څوك شریك نشته.دخالص دین

يعني دتوحيدلائق هم هغه دي.بياني دمشركانوناپاكه عقيده هم بيان كړي ده چه هغوى فرښتي دالله تعالى نزدى ګڼرلوپه وجه دهغوى خيالي تصويرونه جوړوى اوهغوى ته سجدې كوى.په دې ګڼرلوسره چه دوى دالله تعالى نيازبين دى اومونږبه دالله تعالى نيازبين كړى.اوزمونږپه رزق اوپه هريوځيزكښې به بركت وى.اودامطلب نې نه وى چه دقيامت په ورځ باندې به مونږته اوچته اوالله سره نزدې درجه راكړى ځكه چه قيامت ځوهغوى نه مني.داهم ونيلي شوى دى چه دوى هغوى خپل سفارشيان ګڼرى،دجاهليت په زمانه كښې چه به حج ته لاړل نوهلته به نې لبيك ونيلوكښې ونيل،لبيك لاشريك لك الا شريكاً هولك تملكه وماملك،يعني انې الله!مونږخوتاته حاضريو،ستاځوك شريك نشته،خوداسې شريكان چه دهغوى مالك هم ته ځپله نې اوكوم ځيزونه چه دهغوى ماتحت دى دهغې مالك هم ته نې داشك دمخكښنو او روستنوټولومشركانوته وواوټولونبيانوددې دلرې كولوكوشش كولواوحـرف ديوالله تعالى عبادت طرف ته نې رابلل. داعقيده مشركانوبې دليله جوړه كړې وه اوالله تعالى ددې نه بيزار وو.فرمائي. ﴿وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا﴾ يعني هريوامت ته مونږرسول اوليږلوچه هغوى ديوالله عبادت ته رااوبلي اودالله نه سوا دهرچا دعبادت نه نى لرې كړى.﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِيٓ إِلَيۡهِمۡ﴾ يعني ستانه مخكښې چه ځومره رسولان مونږليږلي دى،ټولوته موهم دغه وحى ليږلې ده چه دعبادت لائق صرف الله تعالى دې.بس تاسوزماعبادت كوئ.ورسره داهم بيان فرمائيلي دې چه په اسمان كښې ځومره فرښتې دى كه هغه ځومره لوې مرتبې اوعظمت والاولې نه وى ټولې دالله تعالى مخكښې عاجزه او غلامې دى.دومره ورسره هم اختيارنشته چه دچاپه سفارش كښې شونډې اوخوزوى.

**د يوې غلطې عقيدې وضاحت:** داعقيده غلطه ده چه هغوى دالله تعالى سره داسې دى لكه بادشاهانوسره چه وزيران اومالدارخلق وى چه هغوى دچاسفارش كوى دهغه كار اوشى .ددې باطلې اوغلطې عقيدې نه په دې سره منع شوې ده چه ﴿فَلَا تَضۡرِبُواْ لِلَّهِ ٱلۡأَمۡثَالَ﴾ دالله تعالى مخكښې مثالونه مه بيانوه.الله تعالى ددې نه اوچت دې.دقيامت په ورځ به الله تعالى دخپل مخلوق رښتونې فيصله اوكړى.اوهريوته به دهغه دعملونيدله وركړى.دوى ټول به جمع كړى اوفرښتونه به تپوس اوكړى چه دې خلقوبه تاسوته سجدې كولې؟هغوى به جواب وركړى چه ته پاك نې،بلكه زمونږ پيداكونكې خوهم ته نې،دې خلقوخوپه پيريانونه عبادت كولواوپه دې كښې دزياتوخلقوعقيده اوايمان نه وو.الله تعالى هغوى ته صحيح لارنه ښانى دچامقصدچه په الله تعالى باندې غلط الزام لږول وى اود چاپه زړونوكښې چه دالله تعالى د ايتونواودهغه دنخواودهغه دليلونوباره كښې كفروى.بياالله تعالى ددغه خلقودعقيدې نه انكار اوكړو ځوك نې چه دالله تعالى اولادګڼرلي دى.لكه دمكې مشركانوبه ونيل چه فرښتې دالله تعالى لونړه دى

**دمشركانو پشان د ديهوديانو او نصرانيانو عقيده:** يهودوانى چه عزيزدالله تعالى ځوى دې. د عيسايانو خيال دې چه عيسى عليه السلام دالله تعالى ځوې دې. نوارنې فرمائيل چه ځنګه دهغوى خيـال دې كه داسې وې نو ددې حكم خلاف به وو.نودلته شرط نه دكيدودپاره دې اونه دامكان دپاره.بلكه دمحال دپاره دې او مقصدصرف دهغه خلقوجهالت بيانول دى.ځنګه چه نې فرمائيلي دى ﴿ لَوۡ أَرَدۡنَآ أَن نَّتَّخِذَ لَهۡوًا﴾ كه مونږ دې بې هودة خبراراده لره نودخپل خان نه به موكړې وې،اوكه مونږكولوولاوو،اوپه ايت كښې دى، ﴿ قُلۡ إِن كَانَ لِلرَّحۡمَٰنِ وَلَدٞ فَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلۡعَٰبِدِينَ﴾ يعني ورته اووايه چه كه درحمن اولادوونومابه دټولونه مخكښې منل.نوداټول ايتوند دشرط دمحال دپاره دى دامكان ياكيدلودپاره نه دى.بلكه مطلب نې نه داكيدېشى اونه هغه.الله تعالى ددې ټولو خبرونه صفادې.هغه يوكس،صمداويواځې دې.هريوځيزدهغه ماتحت، فرمانبردار، عاجزاو محتاج ، فقيرېې كس اوبې بس دې.هغه دهريوځيزنه غنى دې.دهرڅه نه بې پرواه،په ټولوباندې دهغه حكومت اوغلبه ده.دظالمانوددې عقيدواودجاهلانوددې خبرونه هغه پاك اوصفادې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | بِالْحَقِّ ۚ | يُكَوِّرُ الَّيْلَ | |
| هغه پيدا کړې دي | آسمانونه | او زمکه | په حقه | نغاړي شپه | |

هغه (الله) آسمانونه اوزمکه په يو مقصد سره پيدا کړې دي| هغه شپه په ورځ باندې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى النَّهَارِ | وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ | عَلَى الَّيْلِ | وَسَخَّرَ الشَّمْسَ | وَالْقَمَرَ ۖ |
| په ورځ باندې | او نغاړي ورځ | په شپه باندې | او تابع کړې دي هغه | نمر او سپوږمۍ |

رانغاړي | او ورځ په شپه باندې رانغاړي| او نمر اوسپوږمۍ (ستاسو د پاره) تابع کړې دي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كُلٌّ | يَّجْرِيْ | لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۖ | اَلَا | هُوَ | الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ۝ |
| هر يو | روان دې (ګرزي) | دوخت مقرر پورې | واورئ | هم هغه | غالب دې \| ښښونکې دې |

هر يو تريو مقررې نيټې پورې روان دې | يادساته چې هغه غالب دې | ډير ښښونکې دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خَلَقَكُمْ | مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ | ثُمَّ جَعَلَ | مِنْهَا | زَوْجَهَا |
| هغه پيدا کړئ تاسو | دنفس (بدن) يو نه | بيا ئې جوړه کړه | ددغه بدن نه | جوړئ دهغه |

هغه تاسو ديو کس (سړي) نه پيدا کړئ | بيائې هم د هغه نه دهغه جوړه (بي بي حوا) پيدا کړه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَنْزَلَ | لَكُمْ | مِّنَ الْاَنْعَامِ | ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۖ | يَخْلُقُكُمْ |
| او نازل ئې کړل | ستاسو دپاره | دخاروو نه | اته نر ښځې | هغه پيدا کوي تاسو |

اوستاسو دپاره ئې په خاروؤ کښې اته جوړې پيدا کړې دي| هغه تاسو د مياندو په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْ بُطُوْنِ | اُمَّهٰتِكُمْ | خَلْقًا | مِّنْ بَعْدِ خَلْقٍ | فِيْ ظُلُمٰتٍ ثَلٰثٍ ۖ |
| په خيټو دميندو | ستاسو کښې | په يو پيدا ښت کښې | روستو دپيدا ښت نه | په تيرو دريو کښې |

خيټو کښې پيدا کوي | اودا پيدائش په مختلفو مرحلو کښې په دريو تياور کښې دننه کيږي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكُمُ اللّٰهُ | رَبُّكُمْ | لَهُ الْمُلْكُ ۖ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا هُوَ ۚ |
| دا ستاسو الله دې | رب ستاسو | هغه لره بادشاهي ده | نشته لائق دعبادت | مګر هم هغه دې |

همدا الله ﷻ ستاسورب دې | بادشاهي هم د هغه ده | ............د هغه نه سوا بل لائق د عبادت نشته

| | |
|---|---|
| فَاَنّٰى | تُصْرَفُوْنَ ۝ |
| پس کوم خواته | تاسو روان کړې شوي يئ |

نو بيا تاسو (دحق نه) کوم خوا اړولې شئ

**قوله تعالى: خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ**

**دالله تعالى قدرتونه:** هريو څيز خالق، دټولو مالک، دټولو حکمران اوپه هرڅه باندې قبضه لرونکې الله تعالى دې.شپه ورځ دهغه په لاس کښې دي.دهغه دحکم په وجه باندې شپه اوورځ ديوبل پسې مسلسل روان دي هغه مخکښې تلې شي اونه روستو.نمراوسپوږمۍ هغه تابع کړې دي،هغوى خپلې دورې پوره کوي ،د قيامت پورې به په دې نظام کښې څه فرق رانشي.هغه دعزت اوعظمت والا اورفعت والادې دګناهګارانو بخښونکې اوپه ګناه ګارومهربانه دې.تاسوټول هغه ديو کس يعنى ادم عليه السلام نه پيدا کړې ئې.

بیا اوګورئ چه تاسو دیوبل نه څومره بدل یئ. رنګ،شکل،اواز،خبرې،ژبه اوانداز ټول بدل بدل دی. د حضرت ادم ﷺ نه دهغه بی بی حواهم پیدا کړه.

ځنګه چه بل ځائې کښې دی چه انې خلقو ادالله تعالى نه ویرېږئ هغه دستاسو رب دی. چه هغه تاسو دیونفس نه پیدا کړې اوهم دهغه نه ئې دهغه ښځه پیدا کړه. بیائې د ویرسړی اوښځې پیدا کړې. هغه ستاسو دپاره اته نراوښځې خناور پیدا کړل. چه دهغوی بیان دسوره مائده په ( مِنَ الضَّانِ اثْنَيْنِ ) کښې دی. یعنی ګډ،چیلې،غوا، اوښ. هغه تاسو دستاسو میاندو په خیټو کښې پیدا کړی،کوم ځائې چه ستاسو پیدانش کیږی.

اول نطفه،بیاوینه،بیاغوښه،هډوکی،رګونه،متې،بیاروح. غوراوکړئ چه هغه څومره ښه خالق دی. په درې تیروکښې دستاسو دپیدانش دتبدیلیانې کیږی. درحم تیاره،په هغې باندې دپوستکی تیاره او د خیټې تیاره.(١) اوهغه چه دازمکه اواسمان اوپخپله تاسواوستاسو مشران اوکشران پیدا کړی دی. هغه دټولو رب دی. دهغه اختیاردی،هغه په ټولوکښې اعلى دی،هغه دعبادت لائق دی،دهغه نه سواځوک دعبادت لائق نشته. افسوس اچه دستاسوسوچ اوعقل څه شوچه تاسو دهغه نه سوادبل چاعبادت کوئ.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنْ تَكْفُرُوْا | فَاِنَّ اللّٰهَ | غَنِيٌّ | | | |
| که تاسو کفر اوکړئ | پس بیشکه الله | بی پروا دی | | | |
| که چرې تاسو ناشکری کوئی | نو(یادساتئ) چې الله ﷻ | | | | |
| عَنْكُمْ | وَلَا يَرْضٰى | لِعِبَادِهِ | الْكُفْرَ | وَاِنْ تَشْكُرُوْا | |
| ستاسو نه | اونه خوښوی | دپاره دبندګانو خپلو | کفر | او که تاسو شکر اوکړئ | |
| ستاسونه بې پرواه دی | اوهغه خپلو بندګانو دپاره کفر نه خوښوی | اوکه تاسو شکراوباسئ | | | |
| يَرْضَهُ | لَكُمْ | وَلَا تَزِرُ | وَازِرَةٌ | وِّزْرَ اُخْرٰى | |
| نو خوښوی هغه دا | ستاسو دپاره | اونه باروی | یو بارونکی | بار دبل چا | |
| نوهغه ئې ستاسو دپاره خوښوی | داواورئی) هیڅوک بوج اوچتونکی به دبل بوج اوچت نکړې شی | | | | |
| ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ | مَّرْجِعُكُمْ | فَيُنَبِّئُكُمْ | بِمَا | | |
| بیا رب ستاسو | واپس ورتلل دی ستاسو | پس خبر به درکړی تاسو ته | په هغه څه | | |
| بیا به تاسو خپل رب ته واپس کیږئ | نو هغه به تاسو ته ستاسو د ټولو عملونو | | | | |
| كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ | اِنَّهٗ | عَلِيْمٌ | بِذَاتِ الصُّدُوْرِ | وَاِذَا |
| چې وئ تاسو | چی کول به مو | بیشکه هغه | عالم دی | په خبرو دسینو باندې | او کله چې |
| خبر درکړی | ............ هغه ته د زړونو پټ رازونه ښه معلوم دی | ............او کله چې | | | |
| مَسَّ الْاِنْسَانَ | ضُرٌّ | دَعَا | رَبَّهٗ | مُنِيْبًا | اِلَيْهِ |
| اورسیږی انسان ته | تکلیف (سختی) | نو رابلی | رب خپل | حال دا چی رجوع کونکې وی | هغه ته |
| انسان ته څه تکلیف اورسیږی | نو د خپل رب نه سوال کوی | ............ اوهغه ته رجوع کوی | | | |

(١) الطبری: ٢١/٢٥٨.

ثُمَّ اِذَا خَوَّلَهٗ نِعۡمَةً مِّنۡهُ نَسِیَ مَا كَانَ

پیا چې کله | ورکړی هغه ته | نعمت | دطرفه خپل نه | نو هیره کړی | هغه سختی | چې وو دی |

بیاچې هغه ورته دخپل طرفنه څه نعمت ورکړی | نو هغه د مصیبت حالت هیرکړی | دکوم دپاره چې

یَدۡعُوۡۤا اِلَیۡهِ مِنۡ قَبۡلُ وَجَعَلَ لِلّٰهِ اَنۡدَادًا

چې رابللو ئې الله | هغې ته | مخکښې ددې نه | او جوړوی | الله لره | شریکان |

ئې وړاندې الله نه سوال کولو | او الله ﷻ سره شریکان جوړول شروع کړی | نتیجه ئې دا شی چې نور

لِّیُضِلَّ عَنۡ سَبِیۡلِهٖ ؕ قُلۡ تَمَتَّعۡ بِكُفۡرِكَ

دپاره ددې چې بې لارې کړی خلق | دلارې دهغه نه | ورته اووایه | چې نفع واخله | په کفر خپل

خلق دهغه دلارې نه گمراه کړی | ته ورته اووایه چې دخپل کفرنه یو څو ورځې فائده اوچته کړه

قَلِیۡلًا ۖۗ اِنَّكَ مِنۡ اَصۡحٰبِ النَّارِ ⑧

لږه | بیشکه ته | دملګرو دوور نه ئې

**قوله تعالی:: اِنۡ تَكۡفُرُوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِیٌّ عَنۡكُمۡ**

**الله ﷻ بې احتیاجه او مخلوق محتاج دې::** فرمائی چه ټول مخلوق الله تعالی ته محتاج دې،اوالله تعالی دټولونه بې نیازه دې.دحضرت موسی علیه السلام فرمان دې په قران کریم کښې نقل شوې دې که تاسواوپه زمکه باندې ټول ساه لرونکی دالله تعالی نه کفراختیار کړی، نوالله تعالی ته څه نقصان نشی ورکولې هغه دټول مخلوق نه بې نیازه اوبې پرواه دې اودتعریفونو والا دې. دصحیح مسلم حدیث کښې دی چه"انې زما بندګانو! که تاسومخکښې روستوانسانان اوپیریان ټول دیوخراب انسان زړه شئ،نوزمابه بادشاهت کښې څه فرق نه راځی.([1])اوالله تعالی دستاسوپه ناشکرئ باندې خوشحاله نه دې اوهغه تاسوته ددې حکم درکوی که تاسودهغه شکراداکوئ نوهغه به په دې باندې ستاسونه راضی شی اوتاسوته به خپل نورنعمتونه درکړی.هریوکس ته به هغه ملاویږی څه چه هغه کړی وی،دیوپه بدل کښې به بل نه نیولې کیږی اودالله تعالی نه یوځیزهم نه دې پټ.انسان ته اوګورئ چه دخپل حاجت په وخت کښې خوالله تعالی ته په ډیرې عاجزې سره اوازکوی اوهغه ته فریادکوی.څنګه چه په بل ایت کښې دی.﴿ وَاِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِی الۡبَحۡرِ﴾ یعنی چه کله په دریاب اوسمندرکښې وی اوهلته په هغوی باندې څه افت راشی نوچه چاچاته دالله تعالی نه علاوه اوازکوی هغوی ترې ټول هیرشی اوصرف الله تعالی ته اوازونه شروع کړی.خودخلاصی موندلوسره مخ واړوی.انسان ناشکره دې! نو فرمائی چه کله ترې مصیبت لاړشی نوداسې شی چه لکه هغه دمصیبت په وخت کښې ورته اوازنه دې کړې. اودادعااوزاری بالکل هیره کړی څنګه چه په ایت کښې دی.﴿ فَاِذَا مَسَّ الۡاِنۡسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ﴾

**قوله تعالی:: وَاِذَا مَسَّ الۡاِنۡسَانَ**

**دانسان د ناشکرئ بیان::** یعنی دتکلیف په وخت کښې خوانسان په ناسته،ولاړه،اوملاسته باندې دزړه د اخلاص نه الله تعالی یادوی.خودهغه تکلیف لرې کیدوسره هغه زمونږنه لرې شی لکه چه هغه ددرد او تکلیف په وخت کښې هډوبالکل مونږته اوازنه وی کړې.بلکه دسکون په وخت کښې دالله تعالی سره شریك جوړوی. نوالله تعالی فرمائی چه داسې خلق به دخپل کفرنه لږه شان فائده واخلی.په دې کښې

[1] صحیح مسلم کتاب البروالصلة باب تحریم الظلم: ۲۵۷۷.

وینا اوسختي ده. څنګه چه فرمانیلي دي.﴿ قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ ﴾ ورته اووایه چه فائده حاصل کړئ،اخري ځاني خودستاسودوزخ دي.اوفرمان دي.﴿ نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَى عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴾ مونږ به هغوی ته څه لږه شان فائده ورکړواوبیابه هغوی دسخت عذابونودپاره بې بسه کړو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَمَّنْ | هُوَ قَانِتٌ | | | | |
| آیا هغه څوك | چي هغه حکم منونکې دي | | | | |
| آیا د اسې سړي غوره دي)یا هغه چي دشپې په وختونو کنبې په | | | | | |
| آنَاءَ اللَّيْلِ | سَاجِدًا | وَقَائِمًا | يَحْذَرُ الْآخِرَةَ | وَيَرْجُوا | |
| په وختونو دشپې کنبې | سجده کونکې | او ودریدونکې | چي یریږي دآخرت نه | او امید لری | |
| سجده پروت اوپه قیام ولاړ وي | ..................داخرت نه ویریږي | اودخپل رب د | | | |
| رَحْمَةَ | رَبِّهِ | قُلْ | هَلْ يَسْتَوِي | الَّذِينَ | يَعْلَمُونَ | وَالَّذِينَ |
| درحمت درب خپل | ورته اووایه | آیا برابر کیدې شي | هغه کسان | چي پوهیږي | او هغه کسان | |
| رحمت امیدساتي | نو ته اووایه چي آیا پوهه اوناپوهه خلق برابریدې شي | اونصیحت خو بس | | | |
| لَا يَعْلَمُونَ | إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ | أُولُوا الْأَلْبَابِ | | | |
| چي نه پزهیږي | بیشکه چي نصیحت قبلوئ | خاوندان دعقلونو | | | |
| عقل مندخلق قبلوي | | | | | |

**قوله تعالی:: أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا**

**دعلم والاوبې علمه برابرنه دي:** مطلب داچه دچاحالت داوی هغه دمشرك برابرنه دي،څنګه چه فرمان دي.(( لَيْسُوا سَوَاءً )) یعنی ټول برابرنه دئ.په اهل کتاب کنبې هغه خلق هم دی چه هغوی دشپې دقیام په حالت کنبې دالله تعالی دکلام تلاوت کوی.اوسجدوکنبې پراته وی.دقنوت نه دلته مرادپه مونځ کنبې خشوع اوخضوع ده صرف قیام مطلب نه دي.ابن مسعودؓ نه دقانت معنی مطیع اوفرمانبردار روایت ده.دابن عباسؓ وغیره نه روایت دی چه ((آنَاءَ اللَّيْلِ)) نه مرادنیمه شپه ده.منصورؒ فرمائي دي نه مراددمانبام اوماسخوتن په مینځ کنبې وخت دي.قتادهؒ وغیره فرمائي اول مینځنې اواخری شپه مرادده.داعبادت کونکې خلق یوطرف ته د ویرې نه په لړزان دی،بل طرف ته امیدواراوطمع لرونکې دي.په نیك خلقوباندې په ژوندکنبې دالله تعالی ویره غالبه وی اودمرګ په وخت کنبې په ویرې باندې امیدغالب شي.رسول اللهﷺ یوکس ته دمرګ په وخت کنبې ځې اوتپوس ترې کوی چه ته خپل ځان په څه حالت کنبې وینې؟هغه عرض اوکړو د ویرې اوامیدپه حالت کنبې.حضورﷺ اوفرمائیل دکوم کس په زړه کنبې داسې حالت کنبې دادواړه یوځائې شي نوالله تعالی دهغه امیدپوره کړی اودهغه دویرې نه هغه خلاص کړی([1]).(ترمذی ابن ماجه وغیره)

ابن عمرؓ ددې ایت تلاوت اوکړواونې فرمائیل داصفت خوپه (حضرت)عثمانؓ کنبې وو،هغوی به اکثردشپې تهجدکول اوپه هغې کنبې به نې دقران کریم لوې لوې سورتونه ونیل تردې چه کله به نې په یورکعت کنبې ټول قران ختم کړو،څنګه چه دابوعبیدهؒ نه روایت دی.شاعروانی،چه د سحر به

---

[1]) ترمذی کتاب الجنائز باب الرجاء بالله والخوف بالذنب عند الموت: ۹۸۳.

وخت کښې به دهغوی خوله دنورپه وجه باندې پرقیده څکه چه هغوی به په تسبیح اودقران په تلاوت
کښې ټوله شپه تیره کړې وه.نسائي وغیره کښې حدیث کښې دی چه چاېوه شپه کښې سل ایتونه
اولوستل،دهغه په عمل نامه کښې به دټولې شپې قنوت اولیکلی شي(۱). (مسندوغیره) نوداسې خلق
اومشرکان څوك چه دالله تعالی سره خلق شریك کوي په هیڅ حالت کښې یوشان نشي کیدې.دعالم
اوبې علمه درجه یوشان نشي کیدې.په هریوعقل لرونکی باندې ددوی فرق ظاهردې.

قُلْ يٰعِبَادِ

| ورته اووايه | اے بندگانو زما

اووايه چې ائې مومنانو

الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ ط لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا

هغه | چې ایمان مو راوړی دی | او یریږئ | درب خپل نه | دپاره دهغه کسانو | چې نیك عمل کوي

بندگانو | دخپل رب نه ویریږئ | څوك چې په دې دنیا کښې نیکي اوکړی | هغوی دپاره نیکه

فِي هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ط وَأَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةٌ ط إِنَّمَا يُوَفَّى

په دې دنیا کښې | نیکي ده | او زمکه دالله | فراښه ده | بیشکه | چې پوره به ورکیدې شي

بدله مقرر ده | ..........اود الله ﷻ زمکه فراخه ده | ........... (یاد ساتئ) کوم خلق

الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿١٠﴾ قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ

صبر ناکو خلقو ته | اجر دهغوی | بې حسابه | ورته اووایه | بیشکه حکم شوې دی ماته

چې صبر کوي | هغوی دپاره بې حسابه اجر اوثواب مقرردې | ..............ته اووايه چې ماته د الله

أَنْ أَعْبُدَ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَهُ الدِّينَ ﴿١١﴾ وَأُمِرْتُ

چې بندگي اوکرم دالله | چې خالص کونکې یم زۀ | هغه لره ددین | او حکم شوې دې ماته |

دعبادت حکم شوې دې | اوعبادت صرف د هغه کوما | ............ اوماته دا حکم (هم) شوې دې

لِأَنْ أَكُونَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِينَ ﴿١٢﴾ قُلْ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ

چې شم زۀ | اول دمسلمانانو نه | ورته اووایه | بیشکه زۀ | یریږم | که نافرمانۍ اوکړم

چې په مسلمانانو کښې دې اول(نمبر) مسلمان یم | ته اووايه که زه دخپل رب نافرمانی اوکړم

رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٣﴾ قُلِ اللّٰهَ أَعْبُدُ مُخْلِصًا

درب خپل | دعذاب دورځې لوئې نه | اووایه | چې الله لره به | بندگي کوم زۀ | خالص کونکې

نو دقیامت دلوئې ورځې دعذاب نه ویریږم | نه او وایه چې زه خو دالله ﷻ عبادت په داسې

لَهُ دِينِي ﴿١٤﴾ فَاعْبُدُوا مَا شِئْتُمْ مِنْ دُونِهِ ط قُلْ

هغه لره | ددین زما | پس بندگي کوئ تاسو | دهغې | چې غواړئ تاسو | بې دهغه نه | ورته اووايه

طریقه کوما........ چې خپل عبادت خالص دهغه په نوم ساتم | نوتاسو دهغه نه سوا چې څوك مو

(۱) احمد: ۱۰۳/٤. وسنده ضعيف وللحديث شاهد عند ابي داود: ۱۳۹۸. وسنده حديث.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاَهۡلِيۡهِمۡ | اَنۡفُسَهُمۡ | خَسِرُوۡۤا | الَّذِيۡنَ | اِنَّ الۡخٰسِرِيۡنَ | |
| بیشکه تاوانیان خلق\|هغه خلق دي اچې په تاوان کنبي ئې واچول \| خانونه خپل \| او اهل وعيال خپل | | | | | |
| خونبن وي دهغه عبادت كوني\| او وايه چي تاوانيان هغه كسان دي اچي خپل خانونه او خپله خيلخانه ئي | | | | | |
| لَهُمۡ | هُوَالۡخُسۡرَانُ الۡمُبِيۡنُ۞ | ذٰلِكَ | اَلَا | يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ | |
| وي به دهغوئ دپاره | دي \| | نبکاره | تاوان | هم دا \| | خبردار (واورئ) \| | په ورځ دقيامت \| |
| دقيامت په ورځ تاواني كړي دي \| ياد ساته ؛ چې هم دغه نبكاره تاوان دي \| ..........په هغوئ باندې به | | | | | |
| ذٰلِكَ | ظُلَلٌ ؕ | وَمِنۡ تَحۡتِهِمۡ | ظُلَلٌ | مِّنَ النَّارِ | مِّنۡ فَوۡقِهِمۡ |
| دا هغه انجام دي | چترونه \| | او لاند دهغوئ نه \| | دوور نه \| | چترونه \| | دپاسه دهغوئ نه \| |
| د پورته نه هم د اور شغلې وي \| اودلاندې نه به هم د اور شغلې وي \| ... ............دا هغه | | | | | |
| فَاتَّقُوۡنِ۞ | يٰعِبَادِ | عِبَادَهٗ ؕ | بِهٖ | يُخَوِّفُ اللّٰهُ | |
| چې يروي الله \| په دې سره \| بندګان خپل \| اے بندګانو زما \| پس اويريږئ زما نه \| | | | | | |
| خبرې دی \| چې الله ﷻ پرې خپل بندګان ويروي \| نو ائې زما بندګانو زما نه اويريږئ \| | | | | | |

**قوله تعالى:: اِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُوۡنَ اَجۡرَهُمۡ بِغَيۡرِ حِسَابٍ۞**

**د صبر اجر به بې حسابه وي:** الله تعالى خپل ايماندار بندګانوته دخپل رب په بندګۍ باندې قايم اوسيدو او په هركاركنبي دهغه دپاك ذات خيال ساتلوحكم وركوي چه چاپه دې دنياكنبي نيكي اوكړه، هغه ته به دې دنياكنبي اوراتلونكي اخرت كنبي نيكيانې ملاويږي.كه تاسوپه يوخانې كنبي دالله تعالى عبادت په نبه طريقې سره اونه كړې شي نوبل خانې ته لاړشئ،دالله تعالى زمكه ډيره زياته ده. د مصيبت نه تختئ،شرك مه منئ.صبر كونكوته بې ناپ اوتوله اوبې حسابه اجرملاويږي،جنت هم دهغوى خانې دې اوماته دصرف دالله تعالى دعبادت كولوحكم شوې دې،اوماته داهم فرمائيلي شوي دي چه د خپل ټول امت نه مخكنبي اول زه پخپله مسلمان شم اوخپل خان دخپل رب فرمانبرداركړم اودهغه په حكمونو باندې عمل اوكړم.

**قوله تعالى:: قُلۡ اِنِّىۡۤ اُمِرۡتُ اَنۡ اَعۡبُدَ اللّٰهَ مُخۡلِصًا لَّهُ الدِّيۡنَ۞**

**د الله ﷻ د وحدانيت اعلان او د شرك نه بيزاري؟** حكم كيږي چه په خلقوكنبي اعلان اوكړه چه ددې سره چه زه دالله تعالى رسول يم، خو د الله تعالى دعذاب نه بې خوف نه يم،كه زه دخپل رب نافرماني كوم نودقيامت په ورځ به زه هم دعذاب نه بچ نه شم.نونوروخلقوته دالله تعالى دنافرمانئ نه ډيرزيات خپل خان ساتل پكاردي.ته دخپل دين اعلان هم اوكړه چه زه دپوخ اويووالي والا مؤحد يم.تاسوچه دچاغواړئ عبادت كوئ،په دې كنبي هم ويناً ده اجازت نه دې.په پوره نقصان كنبي دي هغوى چاچه خپل خان اوخپلوان په نقصان كنبي ګير كړو.دقيامت په ورځ به هغوى كنبي جدائي وي.

يعني ددوئ رشته داران جنت ته لاړل نودوي به په دوزخ كنبي سوزي،اودهغوى نه به جداوي اوكه ټول دوزخ ته لاړل نوهلته به دبدوپه وجه باندې ديوبل نه جداوي اوپريشانه اوغمژن به وي.اوبياچه به دوزخ كنبي دهغوى كوم حال وي دهغې بيان دې چه لاندې بره به ټول يوشان اوروي.

خنګه چه فرمائيلي دي. ﴿لَهُمۡ مِّنۡ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنۡ فَوۡقِهِمۡ غَوَاشٍ ؕ وَكَذٰلِكَ نَجۡزِى الظّٰلِمِيۡنَ۞﴾ يعني دهغوى جامې اوسامان هرڅه به ددوزخ اوروي.دظالمانو دغه بدله ده. ((يَوۡمَ يَغۡشٰهُمُ الۡعَذَابُ))

دقیامت په ورځ باندې به دوی ته دلاندې بره نه عذاب ورکړې کیږی اوورته به ونیلې کیږی چه دخپل عملونومزه واخلئ.داپه دې وجه باندې ښکاره اوظاهرکړې شوه چه ددې رښتوني عذاب نه کوم چه ضروررراوان دې زمابندیان ترې خبرشی اوګناهونه اونافرمانئ پریدی.زمابندیانوزماد نیولو اوزما عذاب اوغضب اوانتقام اوحساب نه اوویریږئ.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا | الطَّاغُوْتَ | اَنْ يَّعْبُدُوْهَا | وَاَنَابُوْٓا | اِلَى اللّٰهِ |
| او هغه کسان چې ځان اوساتو \| دطاغوت (بتانو)نه \| چې عبادت اوکړی دهغې \|او رجوع ئې اوکړه\|الله ته |
| اوځوک چې دشیطان عبادت نه ځان بچ ساتی \| او الله ﷻ ته رجوع کوی \| هغوئ د زیری لائق دی |
| لَهُمُ | الْبُشْرٰى | فَبَشِّرْ | عِبَادِ ﴿۱۷﴾ | الَّذِيْنَ | يَسْتَمِعُوْنَ |
| دپاره دهغوئ دی \| زیری \| پس زیری ورکړه \| زما بندګانونه \| هغه بندګانو ته \| چې اوری |
| نو زما بندګانو ته زیری ورکړه \| څوک چې خبرې ته غوږ ایږدی \| ...................او د ټولو نه په ښه |
| الْقَوْلَ | فَيَتَّبِعُوْنَ | اَحْسَنَهٗ | اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ | هَدٰىهُمُ اللّٰهُ |
| خبره \| بیا پیروی کوی \| دښه ارخ دهغې \| دا هغه خلق دی \| چې هدایت کړې دې دوئ ته الله |
| خبرو عمل کوی \| ...........................هم دغه کسان دی چې الله ﷻ ورته هدایت کړې دې |
| وَاُولٰٓئِكَ | هُمْ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿۱۸﴾ |
| او هم دا کسان \| خاوندان دعقلونو دی \| آې |
| اوهم دغه کسان دعقل خاوندان دی \| |

**قوله تعالى:: وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوْتَ**

**د ایت مبارک شان نزول خاص دی او حکم یې عام دې::** روایت دی چه داایت دزیدبن عمروبن نفیل او ابو ذرسلمان فارسی ﷺ باره کښې نازل شوې دې.[۱] خوصحیح داده چه داایت څنګه دهغه بزرګانو دپاره دې دغه شان داټولوخلقودپاره دې،چه په هغوی کښې داپاک صفتونه وی،یعنی دالله تعالى نه علاوه دټولونه بیزاره وی اودالله تعالى فرمانبرداری کوی.داهغه دی چه دهغوی دپاره ددوارو جهانونو خوشحالي دی.خبره واوری ځان پوه کړی.که هغه ښه وی نوپه هغې باندې عمل کولو والا د مبارکې لائق دی.الله تعالى خپل کلیم پیغمبرحضرت موسى ﷺ ته تورات ورکولوخت کښې فرمائیلی وو، دا مضبوط اونیسه اوخپل قوم ته حکم اوکړه چه ددې ښه خبرې مضبوط اونیسی.عقل لرونکواونیک خلقو کښې دښه خبروقبلولوجذبه ضرورروی.

| | | |
|---|---|---|
| اَفَمَنْ | حَقَّ |
| \| ایا نو (بچ کولې شي څوک ) هغه سړې \| چې ثابته شوی وی |
| ایا د چا په حق کښې چې دعذاب فیصله شوې |
| عَلَيْهِ | كَلِمَةُ الْعَذَابِ | اَفَاَنْتَ تُنْقِذُ | مَنْ | فِى النَّارِ ﴿۱۹﴾ |
| په هغه باندې \| خبره دعذاب \| ایا نو ته بچ کولې شې \| هغه څوک \| چې غوررزیدلې وی په وور کښې |
| وی (نو هغه دوزخیان دی ، ) \| ............ نو ایا ته دوزخیان دعذاب نه خلاصولې شې ؟ \| |

[۱] الطبری : ۲۷۳/۲۱.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لٰكِنِ الَّذِيْنَ | اتَّقَوْا | رَبَّهُمْ | لَهُمْ | غُرَفٌ | مِّنْ فَوْقِهَا |
| البته هغه کسان | چي اویریدل | ادرب خپل نه | دی دپاره دهغوئ | مانړئ | چي دپاسه دهغې به |
| البته څوک چې د خپل رب نه ویریږي \| هغوئ دپاره بالاخانې تیارې دي \| چې دهغې نه پورته | | | | | |
| غُرَفٌ | مَّبْنِيَّةٌ | تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ | وَعْدَ اللّٰهِ |
| نورې مانړئ وی | جوړې کړې شوی | چې بهیږی به | لاند دهغې نه | نهرونه | دا وعده ده دالله |
| نورې بالاخانې تیارې دي \| چې لاندې ترې نه ولې بهیږی \| ............ دا دالله ﷻ وعده ده | | | | | |
| لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ | الْمِيْعَادَ | | | | |
| خلاف نه کوی الله | دوعدې | | | | |
| الله ﷻ هیڅرې د وعدې خلاف نه کوی | | | | | |

**قوله تعالى: اَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ**

**نبی ﷺ هم کافران د جهنم نه نشی خلاصولې** : فرمائی چه دچابدبختی لیکلې شوې ده ته هغه ته صحیح لارنه شې خودلې.څوك دی چه هغه دالله تعالی گمراه کړې کس په صحیح لاربانديې روان کړی.ستانه دانشی کیدې چه ته هغوی ته صحیح لاراوښائې اوهغوی دالله تعالی دعذاب نه بچ کړې.اونیك بخته،اونیکې عقیدې والاخلق به د قیامت په ورځ دجنت په محلونوکښې مزې کوی.په هغه محلونوکښې چه هغه ځوځومنزله دی،دارام ټول سامان به پکښې موجودوی.دااوچت اوغټ،خانسته اومزیداردی.حضورﷺ فرمائی،په جنت کښې داسې محلونه دی چه دهغې دننې حصه دبهراوبهرنئ حصه ددننه نه صفاښکاری.یواعرابی تپوس اوکړویارسول اللهﷺادادکوموخلقودپاره دی؟اوئې فرمائیل دهغه خلقودپاره کوم چه په نرمې سره خبرې کوی ،په خلقوخوراك کوئ،اودشپې چه کله خلق په خانسته خوب اوده وی نودوی دالله تعالی مخکښې اودریږی اواوژاړی،اومونځونه اوکړی ([1]).(ترمذی وغیره)

مسنداحمدکښې درسول اللهﷺ فرمان دې په جنت کښې داسې محلونه دی چه دهغې دننه دبهرنه او بهر د دننه نه صفا ښکاری،هغه الله تعالی دداسې خلقودپاره جوړکړی دی چه هغوی په خلقوباندې خوراك کوی، خبرې په نرمې سره کوی،نفلی روژې زیاتې نیسی اوشپې په اخری حصه کښې تهجدکوی.([2])

مسندپه یوبل حدیث کښې دی چه جنتیان به دجنت محلونوته داسې گوری څنگه چه تاسوداسمان ستوروته گورې،اوروایت کښې دی دمشرقی اومغربی طرفونوستوری،چه څنگه تاسوته ښکاری،دغه شان به درته دجنت هغه محلونه هم ښکاری([3]).اوپه حدیث کښې دی دمحلونودغه تعریفونه اوریدلو سره خلقواووئیل،حضورﷺ داخوبه دنبیانودپاره وی؟حضورﷺ اوفرمائیل ،اود نورو خلقو دپاره هم چاچه په الله تعالی باندې ایمان راوړواورسولان نې رښتیااوگڼړل ([4]).(ترمذی وغیره)

مسنداحمدکښې دی چه رسول اللهﷺ ته صحابه ﷺ عرض اوکروچه یارسول اللهﷺادکوم وخت پورې چه مونږدستاسوپه خدمت کښې حاضریواودستاسونورانی مخ ته گورو،هغه وخت پورې زمونږزړونه نرم

---

[1]) ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة غرف الجنة:۲۵۲۷. وهو حسن.

[2]) احمد:۳۴۳/۵. وهو حدیث حسن .

[3]) صحیح بخاری کتاب الرقاق باب صفة الجنة والنار:۶۵۵۵، صحیح مسلم: ۲۸۳۰.

[4]) ترمذی کتاب صفة الجنة باب فی ترائی اهل الجنة فی الغرف: ۲۵۵۶. وسنده حسن.

وی اومونږ داخرت طرف ته متوجه یوخوچه کله دستاسودمجلس نه پاڅواوددنیاپه کاروبارکښې مشغول شواوپه بچو اوکوروالاکښې مشغول شونوهغه وخت زمونږ دغه حالت نه وی.نوحضورﷺ اوفرمائیل چه تاسوهروخت په هغه حالت کښې وئ کوم وخت چه تاسوزمامخکښې ئې نوفرښتې به تاسوسره لاس ملاووی اوستاسوکورونوکښې به ئې دستاسوسره ملاقات کولې.واورئ اکه تاسوګناهونه نه کوئ نو الله تعالی به داسې خلق راولي چه هغوی به ګناهونه کوی چه الله تعالی هغوی اوبخښې.مونږ اووئیل حضورﷺ جنت جوړشوې دڅه دځیزنه دې؟حضورﷺ اوفرمائیل یوه خښته دسروده اویوه د سپینو زرو. د هغې چونه خالص مشك دی دهغې کانړی لولواویاقوت دی.دهغې خاوره زعفران ده.چه هغې ته څوك داخل شول هغه کامیاب شول،چه بیادبې ماله کیدوڅه ویره نشته.هغه به همیشه په دې کښې اوسیږی دهغه ځانې نه دویستلوڅه امکان نشته.دهغوی کپړې به شلیږی اوزړیږی نه ،دهغوی ځوانی به همیشه دپاره وی.واوړئ اددرې کسانودعانه ردکیږی.انصاف کونکې بادشاه،روژې نیولو والا او مظلوم .ددوی دعاهروخت بره روانه وی اوددې دپاره دآسمان دروازې کهلاؤکړې شی اوالله تعالی فرمائی،زمادې پخپل عزت باندې قسم چه زه به ضروردستامددکوم اګرکه څه وخت پس وی ([1]).

ددې محلونوپه مینځ کښې چشمې بهیږی اوهغه هم داسې چه کوم ځانې ته غواړی اوبه اورسوی څومره چه غواړی هغه روانې کړی. داده دالله تعالی خپل مومن بندګانوسره وعده.یقیناالله تعالی دخپلې وعدې خلاف نه کوی.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ
| آیا نهٔ ګورې تهٔ | چې بیشکه الله | نازلې کړې | دآسمان نه |
| آیا تا دې خبرې ته نه دی کتلی | چې الله ﷻ پورته نه

مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِ
اوبهٔ | پس ننئیستلې ئې دا اوبه | په چینو کښې | په زمکه کښې | بیا | رااوباسی | په دې سره |
اوبه نازلې کړې | بیا ئې د زمکې دپاسه په لارو کښې اوبیولې | بیا ترې نه فصلونه پیدا

زَرْعًا مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا
فصلونه | چې مختلف وی | رنګونه دهغې | بیا | وچ شی | پس تهٔ وینې هغه | زیړ |
کړی | چې د هغې رنګونه مختلف وی | ......بیا هغه اوچ شی | نو ته ئې تک زیړ وینې

ثُمَّ يَجْعَلُهُ حُطَامًا ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ
بیا جوړوی هغه | ذره ذره مات شوی | بیشکه په دې کښې | خامخا نصیحت دې |
بیا ئې تکړې تکړې کړی | ............په دې کښې یقیناً د عقل مندو دپاره نصیحت

لِأُولِي الْأَلْبَابِ ۝ أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ فَهُوَ
دپاره دعقلمندو خلقو | آیا اوس هغه سړې | چې پرانستله الله | سینه دهغه | دپاره داسلام | او هغه |
پروت دې | ............آیا الله ﷻ چې دچا سینه اسلام ته پرانستې ده | نوهغه د خپل رب د طرفه

[1] ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء فی صفة الجنة ونعیمها:۲۵۲۶.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلٰى نُوْرٍ مِّنْ | رَّبِّهٖ ؕ | فَوَيْلٌ | لِّلْقٰسِيَةِ | |
| روان دي په نور باندي | دطرفه درب خپل نه | پس تباهي ده | دپاره دهغو چي سخت شو | |
| په رڼا کښي روان دي (هغه اوګمراهان برابر کيديشي) \| نو د هغه خلقو دپاره هلاکت دي \| د کومو | | | | |
| قُلُوْبُهُمْ | مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ؕ | اُولٰٓئِكَ | فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۲﴾ | |
| زړونه دهغوئ | په ذکر (نصيحت) دالله سره | دا کسان | په ګمراهئ ښکاره کښي پراته دي | |
| زړونه چي دالله ﷻ دياد نه اثر نه اخلي \| ........دغه خلق په ښکاره ګمراهئ کښي پراته دي | | | | |

**قوله تعالى:: اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً**

**اوبه دالله تعالى د قدرت نخښه ده:** په زمکه چه کومي اوبه دي په حقيقت کښي داداسمان نه راغلى دي.څنګه چه فرمان دي چه مونږداسمان نه اوبه وروو.دااوبه زمکه اوڅکي اودننه پکښي خوري شي.اودحاجت مطابق دادسوري نه راوباسي اوچشمي شروع شي.کومي اوبه چه دزمکي دخراب والى په وجه باندي خرابي شي،هغه خرابي وي.دغه شان داسمان اوبه دواوري په شکل په غرونوباندي جمع کيږي،هغه په غرونوکښي دننه ننوځي اوبيادهغي نه ابشارونه بهيږي. ددي چينو او دريابونو او به پټوته رسي چه په هغي باندي پټي شنه شي.چه دمختلف رنګونو،بويونومزواوخانسته شکل او صورت والاوي.بياپه اخري وخت کښي دهغي خواني اوشين رنګ په زيړرنګ بدل شي.بيااوچ شي اوکټ کړي شي.نودعقل لرونکودپاره په دي کښي نصيحت نشته؟هغوى دانه ګوري چه هم دغه شان دنياده چه نن خوان اوخائسته ښکاري،صبابه بوډا اوبدرنګه وي.نن چه يوکس خوان اوطاقتوردي صبابه هغه بوډابدشکله اوکمزوري وي،اوبيابه اخرمړشي.نوعقل لرونکي دي په انجام باندي نظراوساتي.ښه هغه دي چه دهغه انجام ښه وي.زيات ځايونوکښي ددنيادژوندمثال دباران په وجه باندي دشين شوى پټي سره ورکړي دي.څنګه چه په ﴿وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ کښي.

**قوله تعالى:: اَفَمَنْ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ**

بيافرمائي چه دچاسينه داسلام دپاره کهلاوشوه اوچاچه دخپل رب نوراومونډلواودسختي سيني اوتنګ زړه والابرابرکيديشي؟ په حق باندي قائم اودحق نه لري يوشان کيديشي؟څنګه چه فرمائيلي دي.﴿ اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا ﴾ هغه کس څوک چه مړووهغه مونږروښانه کړلواوهغه ته مونوروکړو،چه هغه دخان سره په خلقوکښي ګرځوي.اوهغه چه تياروکښي وواودهغي نه خلاصي ګران دي،دواړه برابر کيديشي؟ نودلته ئي هم نتيجه بيان کړي ده چه دچازړونه دالله تعالى په ذکرباندي نه نرم کيږي،دالله تعالى حکمونه نه مني،دالله تعالى مخکښي عاجزي نه کوي،اوسخت زړه والاوي دهغوى دپاره ويل (هلاکت) دي، خرابي اوافسوس اوحسرت دي.دوي بالکل ګمراه دي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ نَزَّلَ | اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ | كِتٰبًا | مُّتَشَابِهًا | | |
| الله نازل کړي دي | دټولونه بهتر کلام | داسي کتاب | چه ټولي حصي ئي يو شان دي | | |
| الله ﷻ ډير ښکلي کتاب نازل کړي دي \| داسي کتاب چي مضامين ئي يو بل سره | | | | | |
| مَّثَانِيَ ۖ | تَقْشَعِرُّ | مِنْهُ | جُلُوْدُ | الَّذِيْنَ | يَخْشَوْنَ |
| بار بار ذکر شوى دي | چي زډيږي | (داوريدو) ددي نه | خرمني | دهغه کسانو | چي يريږي |
| سم برابردي \| بيا بيا لوستلي شي \|........کوم کسان چي دخپل رب نه ويريږي نو د هغوى | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبَّهُمْ ۚ | ثُمَّ تَلِيْنُ | جُلُوْدُهُمْ | وَقُلُوْبُهُمْ | اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ ۭ |
| درب خپل نه | بيا نرمې شي | څرمنې دهغوئ | او زړونه دهغوئ | يادولو دالله ته |

زړونه ترې ريږدي | نوبيا د هغوئ وجودونه او زړونه دالله ﷻ ياد ته متوجه شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ | يَهْدِيْ | بِهٖ | مَنْ | يَّشَاۗءُ ۭ |
| دا هدايت دې دالله | لار ښائي | په دې سره | هغه چاته | چې غواړي ئې هغه |

دادالله ﷻ هدايت دې | اود چا په حق کښې چې اوغواړي نو ددې په ذريعه ورته هدايت کوي

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | مِنْ | هَادٍ ۝ |
| او هغه څوك چې بې لارې ئې کړي الله | پس نشته | هغه لره | څوك لارښودونكې |

اوالله چې څوک بې لارې کړی | نو هغه ته هيڅوک لارخودونکې نشته |

**قوله تعالى:: تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُوْدُ الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ۚ**

**د مشابه او مثاني تفسير**:الله تعالى دخپل قران كريم په تعريف كښې فرمائي چه دا بهترين كتاب هغه نازل كړې دې،چه هغه ټول يوشان دې اوددې ايتونه بيابياراغلي دى چه په اسانه باندې په دې خلق پوهه شى.يوايت دبل ايت په شان دې اوحرف دبل حرف سره ملاويږى.ددې سورت ايتونه دبل سورت ايتونوسره يوشان دى،يوه خبره اويو ذكر څوځوځايونوكښې بې اختلافه شوې دې . بعضې ايتونه هم په يوبيان كښې. په بعضوكښې چه څه ذكردى دهغې الټه هم شته.لكه د مومنانو د ذكر سره دكافرانوذكر،دجنت سره ددوزخ ذكروغيره.اوګورئ دابرارذكرسره دفجارذكردې.دسجين سره دعليين بيان دې.متقينوسره دطاغين ذكردې،دجنت ذكرسره ددوزخ ذكردې.يعنى دامعنى ده دمثاني .اويوشانوالې د ايتونوته وائي چه هغه ديوشان ذكرياره كښې مسلسل راروان دى.دلته دې لفظ چه كومه معنى ده هغه داده او﴿وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ﴾ كښې بله معنى ده.

**دالله تعالى په ايتونوباندې دمومنانو زړونه ريږدي** ::ددې پاك او اثر كونكو ايتونو د مومنانو په زړوباندې نور پريوځى،دوى ددې اوريدلو سره ويريږى.د سزاګانو اودهمكيانو اوريدلوسره دهغوى سينې درزيږى. د هغوى ويخته اودريږى،اوپه عاجزې اوژړافريادسره الله تعالى ته ښكته شي. دهغه په رحمت اولطف باندې نظركړى اواميدساتى.نو دهغوى حال به دتورو زړونووالا نه بالكل جداوى دوى دالله تعالى كلام دنيكوسره اورى،هغوى په غزلوباندې سرونه خوزوى.داخلق په قرانى ايتونوباندې خپل ايمان نورهم مضبوطوى،خوچه دچاپه زړونوكښې بيمارى ده هغوى دقران ايتونه اوريدلوسره نورهم كفركښې مخكښې ځى.دوى په ژړاباندې سجدوكښې اوغورځيږى،اوهغوى په خنداګانوسره او په خان خودلوسره ګرځى.دقران فرمان دې. ﴿اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ﴾

يعنى دالله تعالى يادد مومنانوزړونه رپوى.هغوى په ايمان اوتوكل كښې مخكښې شى. د مونځ، زكوة، اوخيرات خيال ساتى،رښتونې اوايماندارهغه دى.درجې،مغفرت اوښه رزق به هم دغه خلقوته ملاويږى.اوپه ايت كښې دى﴿وَالَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوْا عَلَيْهَا صُمًّا وَّعُمْيَانًا ۝﴾ يعنى ښه خلق قران كريم دكنړواوړندوپه شان نه لولئ چه ددې طرف ته خونه صحيح خيال كوى اونه ئې دعمل كولواراده وى،بلكه دوى ته غوږاوزړه ايخودلې وى،په غوراوفكرسره معنى مطلب باندې ځان پوهوى.دوى ته توفيق ملاوشى اوپه سجده كښې اوغورځيږى اودعمل كولوپاره تيار شى.دوى په خپل عقل باندې كاركونكى دى.نوروته كتلواوجهالت پسې ګرځيدلووالاته دى.دريم صفت د نورونه جداپه دوى كښې

دادي چه دوی دقران اوریدووخت کښې په ادب سره ناست وی.دحضورﷺ تلاوت اوریدلوسره به دصحابه کرامؓ بدن اوروح دالله تعالی طرف ته ښکته شو،اوپه هغوی کښې به خشوع اوخضوع پیداشوه خودانه وه چه چغې به ئې وهلې اوځان به ئې خودلوبلکه په ارام سکون اوخشوع سره به ئې دالله تعالی کلام اوریدلو،اودزړه قراراوسکون به ئې حاصلولواودې وجه باندې دتعریف اوصفت قابل شول.رضی الله تعالی عنهم اجمعین.

**د اولیاء الله صفات:** عبدالرزاق نه روایت دې چه حضرت قتاده رحمه الله فرمائی داولیاء الله داصفت دې،چه قران اوریدوسره د هغوی زړونه موم شی اودالله تعالی دذکرطرف ته متوجه شی.دهغوی زړونه اوویرېږی، دهغوی دسترګونه اوښکې بهیږی اوپه طبیعت کښې سکون پیداشی دانه وی چه عقل ئې خې.عجیبه شان حالت ئې شی.دنیك اوبدهوش ورته نه وی،داهاهوکول دبدعت کارونه دی اوټوپونه وهل اوخپلې کپړې شلول داشیطانی حرکتونه دی.دالله تعالی دذکرنه مراد وعده د الله تعالی هم بیان کړې شوې ده. بیا فرمائی چه دادی صفتونه دهغه خلقوچاته چه الله تعالی هدایت کړې دې.که ددې خلاف تاسوڅوك وینئ نوپوهه شئ چه دوی ګمراه دی.اویقین اوساتئ چه الله تعالی کوموخلقوته هدایت ورکول نه غواړې هغوی څوك صحیح لارته نشي راوستلې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَفَمَن يَتَّقِي | بِوَجْهِهِۦ | سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ | يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ | وَقِيلَ |
| آیا پس هغه څوك چې بچ کوی ځا | په مخ خپل سره | دسخت عذاب نه | په ورځ دقیامت | اواوبه ونیلې شی |
| آیا څوك چې دقیامت په ورځ دخپل مخ په ذریعه ځان دسخت عذاب نه بچ کوی | | | | او داسې ظالمانو ته |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِلظَّٰلِمِينَ | ذُوقُوا۟ | مَا | كُنتُمْ | تَكْسِبُونَ ﴿٢٤﴾ | كَذَّبَ |
| ظالمانو ته | اوڅکئ مزه | دهغه عمل | چې وئ تاسو | چې کولو به مو | دروغ ګنړلې وو |
| به حکم اوشی | چې دخپل عمل سزا اوڅکئ | ............................ | | | د دوی نه وړاندې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٱلَّذِينَ | مِن قَبْلِهِمْ | فَأَتَىٰهُمُ ٱلْعَذَابُ | مِنْ حَيْثُ | |
| هغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | پس راغې هغوئ ته عذاب | دداسې طرفنه | |
| دم خلقو(پیغمبران) دروغژن ګنړلې وو | نود هغه طرفه ورته ناګهانی عذاب راغلو | | چې د هغوئ | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٥﴾ | فَأَذَاقَهُمُ ٱللَّهُ | ٱلْخِزْىَ | فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ | |
| چې نه راتلو په خیال دهغوئ کښې | پس ورواوڅکوله هغوئ ته الله | شرمندګی | په ژوند ددنیا کښې | |
| پرې ګمان هم نه وو | .........................نو الله تعالی په باندې ددې دنیا په ژوند کښې دذلت مزه اوڅکوله | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَعَذَابُ ٱلْءَاخِرَةِ | أَكْبَرُ ۚ | لَوْ كَانُوا۟ | يَعْلَمُونَ ﴿٢٦﴾ | |
| او خامخا عذاب داخرت | زیات سخت دې | کاش چې وې دوئ | چې پوهیدلې | |
| اوداخرت عذاب خو ډیر لوئې دې | ..................کاش که دوئ پوهیدلې | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ ضَرَبْنَا | لِلنَّاسِ | فِى هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ | مِن كُلِّ مَثَلٍ | لَّعَلَّهُمْ | |
| او بیشکه بیان کړې دی مونږه | دپاره دخلقو | په دې قران کښې | هر قسم مثالونه | دپاره ددې چې دوئ | |
| اومونږ په دې قران کښې خلقو ته هرقسم ښه ښه مضمونونه بیان کړې دی | | | ............... | د دې دپاره چې | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٧﴾ | قُرْاٰنًا | عَرَبِيًّا | غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ |
| نصيحت قبول كړي | داسې قران | چې په عربئ ژبه كښې دې | چې نهٔ دې خاوند دكوږوالي |
| نصيحت ترې واخلي | دا عربي قران دې | چې د ذرې هومره كږليچ په كښې نشته دې | |
| لَعَلَّهُمْ | يَتَّقُوْنَ ﴿٢٨﴾ | ضَرَبَ اللّٰهُ | مَثَلًا رَّجُلًا |
| دپاره ددې چې دوئ | خان اوساتي دخراب انجام نه | بيانوي الله | يو مثال / ديو سړي |
| دې دپاره نازل شوې دې چې دوئ پرهيزگار جوړ شي | | الله ﷻ يو مثال بيانوي چې يو سړې (غلام) | |
| فِيْهِ | شُرَكَآءُ مُتَشٰكِسُوْنَ | وَرَجُلًا | سَلَمًا لِّرَجُلٍ |
| چې وي په هغې كښې | شريكان / تول بد خويه | او بل سړې وي | سالم ديو سړي (مالك) |
| دې چې ځو كسان په كښې شريك وي | اوديوبل سره ضد ساتي | او بل سړې دې | چې تول ديو مالك مال دې |
| هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا | اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ | بَلْ اَكْثَرُهُمْ | لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٢٩﴾ |
| ايا برابريدې شي دا دواړه مثالونه | تول ثناده الله لره | بلكه زيات ددوئ نه | نهٔ پوهيږي |
| ايا ددې دواړو حال برابريدې شي | تول تعريفونه الله دپاره دي | بلكه په دوئ كښې زيات خلق نه پوهيږي | |
| اِنَّكَ | مَيِّتٌ | وَّاِنَّهُمْ مَّيِّتُوْنَ ﴿٣٠﴾ | ثُمَّ اِنَّكُمْ |
| بيشكه تهٔ هم | مړكيدونكې ئې | او بيشكه دوئ هم مړكيدونكې دي | بيا به بيشكه تاسو |
| بيشكه ته به هم مړې ........ | | اودوئ بهٔ هم مري ........ | بيا به يقيناً تاسو تول دقيامت |
| يَوْمَ الْقِيٰمَةِ | عِنْدَ رَبِّكُمْ | تَخْتَصِمُوْنَ ﴿٣١﴾ | |
| په ورځ دقيامت | په نز درب ستاسو | جګړه كوى (مقدمه به پيش كړئ خپله خپله) | |
| په ورځ د الله ﷻ په دربار كښې جګړې كوئ | | | |

**قوله تعالى:: اَفَمَنْ يَّتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ**

**دمنكرانودپاره سخت عذاب:** يوهغه چه هغه ته دهنګاموپه ورځ باندې امان ملاؤوي،اويوهغه چه هغه ته دعذاب سپيړې ملاويږي،برابركيديشي؟خنګه چه فرمانيلى دى.﴿اَفَمَنْ يَّمْشِيْ مُكِبًّا عَلٰى وَجْهِهٖٓ اَهْدٰٓى﴾ پرمخې په مخ باندې ګرخيدووالا،اوپه خپلوخپوباندې په صحيح لارباندې تلووالابرابرنشي كيدلې. دا كافران به دقيامت په ورځ باندې التهٔ رابنكلى شي اورته به ونيلى كيږى چه داورمزه واخلى:اوپه ايت كښى دى.﴿ اَفَمَنْ يُّلْقٰى فِى النَّارِ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْٓ اٰمِنًا يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ دوزخ ته به داخل كيدو والا بدنصيبه بنه دې ياپه امن سره دقيامت ورځ تيرولووالابنه دي؟دلته ددې ايت مطلب هم دا دي،خوديوقسم ذكرنې كړې دي اودبل قسم ذكرنې پرېخودې دې.خكه چه په دې باندې هغوى هم پوهيږي.داخبره دشاعرانوپه كلام كښى هم موندلې كيږى.مخكښى خلقوهم دالله تعالى خبره نه وه منلې اورسولانوته نې دروغژن ونيلى وو.بيااوګورئ په هغوى باندې په خپله بې خبرې كښى خنګه عذابونه راغلل.دالله تعالى عذاب هغوى په دنياكښى ذليل اوخواركړل اوداخرت سخت عذاب دهغوى دپاره پاتې دې.نوتاسوته ويريدل پكاردى چه شريف رسول چيرلو اونه منلوپه وجه باندې به په تاسوباندې دهغوى نه هم زيات عذاب راشى.كه تاسوعلم لرونكى ني نودهغوى دحالاتوذكراونصيحت ستاسو دپاره كافي دي.

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ**

**قران كښې مثالونه:** په مثالونوباندې خبره په اسانه سره په پوهه كښې راځى په دې وجه باندې قران مجيد كښې هرقسمه مثال وركړې شوې دې چه خلقوته ښه يادشي.نوارشادشوې دې( ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ أَنفُسِكُمْ ) الله تعالى دستاسودپاره هغه مثالونه ارشادفرمائيلى دى كوم چه تاسوپخپلوكښې ښه پيژنئ.اوپه ايت كښې دى.( وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۖ وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ ) دا مثالونه مونږدخلقومخكښې بيانوو. عالمان په دې ښه طريقې سره پوهيږى اودقران په ساده عربې ژبه
كښې دې چه په هغې كښې څه كمې نشته.واضح دليلونه اوښكاره مثالونه دى.څكه چه ددې لوستلو او اوريدلوسره خلق خپل ځان بچ اوساتى ددې عذاب دايتونوپه وجه باندې خپل ځان دخرابونه اوساتى اوددې دثواب دايتونوپه وجه باندې دنيك عملونودپاره محنت اوكړى.

**قوله تعالى:: ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيهِ شُرَكَاءُ**

**د مؤمن او مشرک مثال::** ددې نه پس الله تعالى دتوحيد منونكى اودمشرك داسې مثال پيش كوى،چه يو خوهغه غلام دې چه دهغه ډيرزيات مالكان وى اودهغوى پخپلوكښې ديوبل سره نه لرى.دويم هغه غلام چه هغه خالص ديوسړى ملكيت وى.دهغه نه علاوه په هغه باندې دبل چاځه اختيارنه وى. نو د ستاسوپه نزدباندې دادواړه برابردى؟بالكل نا!دغه شان توحيدمننوكې چه هغه صرف ديوالله تعالى (وحده لاشريک له) عبادت كوى اومشرك چه هغه دځان دپاره ډيرمعبودان پيداكړى دى،په دې دواړوكښې څه نسبت نشته.چرته دامخلص توحيد منونكې؟ اوچرته هغه ګمراه مشرك؟ددې ښكاره اوصفامثال بيانولوسره هم دالله تعالى حمداوثناء وئيل پكاردى چه هغه خپل بنديان داسې پوهه كړل چه حقيقت پرې بالكل ښكاره شو.دشرك بدى اودتوحيدښه والې ورته بالكل يادشو.اوس به دالله تعالى سره هغه خلق شرك كوى څوك چه بالكل بې علمه وى.چه په هغوى كښې سوچ اوفكرصلاحيت بالكل نه وى.

**قوله تعالى:: إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ**

**دې ايت مبارک سره د رسول كريم ﷺ په مرګ باندې د ابوبكر صديق ؓ استدلا::** ددې نه پس حضرت ابوبكر صديق ؓ ددې ايت تلاوت د حضور ﷺ د وفات نه پس اوكړواوبيابل ( وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ ) دآخرې پورې تلاوت اوكړواوخلقوته ئې اووئيل چه حضور ﷺ وفات شو.دهغه كلام اوريدلوسره ټولوته يقين شوې وو.ددې ايت مطلب دادې چه ټول خلق ددې دنيانه تلووالادى اوپه اخرت كښې به دخپل رب سره جمع كيږى هلته به الله تعالى په مشركانو او توحيدمنلووالوكښې صفافيصله اوكړى اوحق به ښكاره شى.دهغه نه ښه فيصله كولو او زيات علم والابه څوك وى؟ ايمان،اخلاص اوتوحيداوسنت والابه خلاص شى.شرك، كفر، انكاراونه منلو والوته به سخت عذاب ملاويږى.دغه شان چه كومودووكسانوپه دنياكښې يوبل سره جهګړه وه هغوى به دقيامت په ورځ انصاف كونكى الله تعالى مخكښې كړې شى اوفيصله به شى.ددې ايت نازليدوباندې دحضور ﷺ نه تپوس اوشوچه دقيامت په ورځ باندې به بياجهګړې وى؟حضور ﷺ اوفرمائيل اويقينا انوحضرت عبدالله ؓ اوفرمائيل چه بياخوډيره ګرانه ده.(ابن ابى حاتم)

**قوله تعالى:: ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ**

**قيامت كښې به ټولې جګړې فيصله كيږى::** دمسند احمدپه حديث كښې داهم دى چه ايت( ثُمَّ لَتُسْأَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ )يعنى هغه ورځ به ستاسونه دالله تعالى دنعمتونوتپوس اوشى،دنازليدوپه وخت كښې د حضور ﷺ نه چاسوال اوكړوچه هغه كوم نعمتونه دى چه دهغې باره كښې به زمونږنه تپوس كيږى؟ مونږ خوپه كهجورو خوړلو او اوبو څكلوباندې ګذاره كوو.حضور ﷺ اوفرمائيل چه اوس نشته نوځه چل

اوشو؟ زربه تاسوته ډيرنعمتونه حاصل شي.داحديث په ترمذي اوابن ماجه کښې هم دې اوامام ترمذي دې ته حسن وائي.([1])دمسندهم دې حديث کښې دی چه حضرت زبيربن عوامؓ دايت((إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ)) په نازليدوباندې تپوس اوکړوچه يارسول الله‌ازمونږ.کومې جهګړې چه په دنياکښې د يو بل سره وې هغه به هلته دقيامت په ورځ باندې بياکيږي؟اودګناهونوتپوسونه به هم کيږي؟حضورﷺ اوفرمائيل هو،هغه به بياضرورکيږي اوهريوکس ته به خپل پوره پوره حق ملاويږي.داأوريدوسره هغه عرض اوکړوچه داخوبياډيرګران کاردې.([2]) مسنداحمد کښې دی چه حضورﷺ فرمائيلی دی چه د ټولونه مخکښې به دګاونډيانوديوبل سره جهګړې به پيش کړې شي ([3]).اوپه حديث کښې دی چه په هغه پاك ذات مې دې قسم وی.دچاپه قبضه کښې چه زماساه ده چه دټولوجهګړوفيصله به دقيامت په ورځ کيږي.تردې چه هغه چيلې کوموچه پخپلوکښې جهګړې کړې وی اويوه بلې لره په ښکروهلې وی،دهغې بدله به ترې هم اخستلې شي.([4])(مسنداحمد)

د مسنديوبل حديث کښې دی چه دوه چيلې په جهګړه باندې ليدلوسره حضورﷺ دحضرت ابوذرؓ نه تپوس اوکړوچه تاته پته ده دوی ولې جهګړه کوی؟حضرت ابوذرؓ جواب ورکړوچه حضورﷺ ماته څه پته ده؟حضورﷺ اوفرمائيل چه ټهيك ده،خوالله تعالی ته ددې پته ده اودقيامت په ورځ به ددوی دواړوانصاف کوی.([5])

بزارکښې دی چه رسول اللهﷺ فرمائيلی دی چه ظالم اوخيانت کونکې بادشاه اودهغه رعايابه دقيامت په ورځ باندې جهګړه کوی اورعايابه په هغه باندې غالبه شي،نوالله تعالی به حکم اوکړی چه دې دوزخ ته اوغورځوئ.([6])ددې حديث يوروايت کونکې اغلب بن تميم چه څنګه حافظ ښکاروی هغه شان نه دې.حضرت عبدالله بن عباسؓ فرمائي چه هرربښتوني به دروغژن نه،هرظالم دمظلوم نه،هرهدايت موندلوو‌الابه دګمراه نه،هرکمزورې به دزوراورسره هغه ورځ جهګړه کوی.تردې چه دروح اوبدن په مينځ کښې به هم هغه ورځ جهګړه وی.روح به بدن باندې الزام لږوی چه ټولې بدئ تاکړی دی اوبدن به روح ته وائي چه ټول خواهش اوشرارت دستاوو.يوفرښته به په هغوی کښې فيصله اوکړی.اوبه فرمائي چه واورئ!يوانسان دې دهغه سترګې شته،خوبالکل شل اوګوډدې،ګرځيدې نشي.دويم کس ړونددې خودهغه خپې لاسونه ټهيك دی.دوی دواړه په يوباغ کښې دی.ګوډړوندته وائي،روره داباغ خودميوونه ډك دې خوزماخپې نشته چه لاړشم اودأميوې راأوشکوم.ړوندورته جواب ورکوی چه راشه زماخپې اووايئ په دوی دواړوکښې مجرم څوك دې؟بدن اوروح به جواب ورکړی چه دواړه مجرمان دی. فرښته به جواب ورکړی چه بس فيصله تاسواوکړه. بدن لکه سورلې ده اوروح په دې باندې سوردې.ابن ابی حاتم کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمرؓ فرمائي چه ددې ايت نازليدو باندې مونږ.حيران شوچه زمونږ.اواهل کتاب خوخپلوکښې جهګړه نشته،بيابه دقيامت په ورځ څنګه جګړې کوو؟ددې نه پس چه په خپلوکښې فتنې شروع شوې نومونږ.ته پته اولږيده هم داهغه جهګړې دی کومې چه به دالله تعالی په درباركښې پيش کيږي.ابوالعاليه‌رحمه الله فرمائي چه دقبلې والابه دې قبلې والاسره جهګړه کوی.اوابن

[1]) احمد: ۱۶٤/۱، ترمذی کتاب تفسیر القرآن باب ومن سورة زمر:۳۲۳۶. س

[2]) احمد: ۱۶۷/۱. وسنده حسن.

[3]) احمد: ۱۵۱/۱، وهوحدیث حسن المعجم الکبیر للطبرانی: ۳۰۳/۱۷ ح/۸۳۶. وسنده حسن.

[4]) احمد: ۲۹/۱ ،. وحدیث مسلم: : ۲۵۸۲. بغنی عنه.

[5]) احمد: ۱۶۲/۱.

[6]) مسند البزار:۱۶٤٤ .

زيدنه روايت دی چه مراددااسلام والواوكافرانوجهګړه ده. خومونږمخکښې بيان کړې دې چه د ايت د
ټولوډپاره عام دې.والله سبحانه وتعالى اعلم.

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللهِ وَكَذَّبَ

پس څوک دي ډير ظالم | دهغه چانه | چې دروغ ني اوتړل | په الله پورې | او دروغ ني اوګڼړو |

نو دهغه چانه زيات ظالم څوک کيدې شي | چې په الله ﷻ باندې دروغ اوتړی | او کله چې

بِالصِّدْقِ اِذْ جَآءَهٗ ؕ اَلَيْسَ فِيْ جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۲﴾

صداقت لره | کله چې راغې هغه ته | آيا نشته | په دوزخ کښې | ځائې داوسيدو دپاره دکافرانو |

ورته رښتينی خبره راشي نو هغه دروغ اوګڼړي؟ | آيا د(داسې) کافرانو استوګنه په دوزخ کښې نه ده

وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ

او هغه کس | چې راځي ورو صدق | او هغه چاچې رښتينې اومنو هغه | دغه کسان چې دي | هم دوئ

اوڅوک چې رښتينې خبره راوړي | او هغه رښتيا اومنې | ..........................نو هم دغه کسان

الْمُتَّقُوْنَ ﴿۳۳﴾ لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ

دعذاب نه بچکيدونکې دي | دپاره ددوئ | هغه څه دي | چې غواړي ني دوئ | په نز درب خپل

پرهيزګاران دي | هغوئ دپاره به د خپل رب سره هغه ځيز وی کوم چې هغوی اوغواړي |

ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳۴﴾ۚ لِيُكَفِّرَ اللهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ

دا بدله ده | دنيکانو خلقو | دپاره ددې چې لرې کړې الله | ددوئ نه | ډيره بده هغه ګناه

دا د نيکانو خلقو بدله ده |.................. ددې دپاره چې الله ﷻ د هغوئ هغه ګناهونه کوم چې هغوی

عَمِلُوْا وَيَجْزِيَهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ الَّذِيْ

چې کړې وه دوئ | او چې ورکړي دوئ له | اجر ددوئ | په سبب د ډير ښه عمل | هغه

کړې دی هغه ورته معاف کړی | اودنيکو اعمالو ورته پوره پوره بدله ورکړي

كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۳۵﴾

چې وو دوئ | چې کوو به ني |

**قوله تعالى:: فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللهِ**

**دټولونه غټ ظالم څوک؟** :-مشرکانو په الله ﷻ به ډيرغټ دروغ وئيلی وواوالزامونه ني پرې لږولې وو. کله به ني دهغه سره نورمعبودان خودل، کله به ني فرښتې دالله ﷻ لونړه خودلې، کله به ني په مخلوق کښی څوك دهغه ځوې يادولوچه ددې ټولوکارونونه دالله ﷻ ذات پاك اوصفاوو، ددې سره په هغوی کښی دويم خراب عادت داووچه کومې خبرې به الله ﷻ په نبيانو عليهم السلام باندې نازلولې هغه به ني نه منلې، نواونې فرمانيل چه دې دټولوغټ ظالم دې اوکومه سزاچه هغوی ته پکارده هغې نه نې خبره کړل چه دداسې خلقوځائې دوزخ دې څوك چه دمرګ پورې په انکاراودروغوباندې وو.

**قوله تعالى:: وَالَّذِيْ جَآءَ بِالصِّدْقِ**

د هغوی دخراب عادتونواوسزاذکرکولونه پس بيادمومنانودښه عادتونوذکرکوی چه رښتيانې راوستل اورښتيانې اومنل يعنی حضور ﷺ حضرت جبرائيل عليه السلام اوهرهغه کس کوم چه دتوحيداقرارکوی او د نبيانو عليهم السلام مسلمان امت. دوی به دقيامت په ورځ وانی چه تاسومونږته څه راکړل اوڅه مواوونيل

په هغې مونږ عمل اوکړو.پخپله رسول اللهﷺ هم دې ایت کښې داخل دې حضورﷺ هم رښتیا راوړلو والا اود نورو رسولانو تصدیق کونکې اوپه هغوی باندې چه څه نازل شوی دی دهغې منلووالاووددې سره داصفت دټولو ایماندارودې چه هغوی الله ﷻ باندې، فرښتو باندې، کتابونو باندې، اورسولانوباندې ایمان لري.

دربیع بن انس په قرات کښې دی ﴿وَالَّذِیْ جَآءَ بِالصِّدْقِ﴾ دی.حضرت عبدالرحمن بن زیدبن اسلم فرمائی رښتیا راوړلو والاحضورﷺ دې اوهغه رښتیامنلووالامسلمان دې هم هغه متقی،بزرګ او پرهیزګاردې څوک چه دالله ﷻ نه ویریږی اودشرك اوکفرنه ځان ساتی دهغوی دپاره جنت دې هغوی به چه څه غواړی ورته به ملاویږی.ددې پاك خلقودپاره هم دغه بدله ده دهغوی بدئ خومعاف کړې او نیکیانې ئې قبولې کړې.څنګه چه په بل روایت کښې دی.﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِیْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا﴾دا هغه خلق دی چه ددوی نیکیانې مونږقبولې کړو.اوبدئ ئې معاف کړودوی به په جنتونوکښې اوسیږی دوی سره بالکل رښتیااوصحیح وعده ده.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلَیْسَ اللّٰهُ | بِكَافٍ | عَبْدَهٗ ؕ | وَیُخَوِّفُوْنَكَ | |
| آیا نهٔ دې الله | کافي | بنده خپل لره | او یروی دا خلق تالره | |
| .. آیا صرف الله ﷻ دخپل (نیک) بنده دپاره کافي نه دې ؟ او دوئ تا دالله ﷻ .............. | | | | |
| بِالَّذِیْنَ | مِنْ دُوْنِهٖ ؕ | وَمَنْ یُّضْلِلِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | |
| په هغه معبودانو سره | چې بې دالله نه دی | او هغه څوک چې ګمراهه ئې کړی الله | پس نشته هغه لره | |
| نهٔ سوا د نورو څیزونو نه ویروی | او څوک چې الله ﷻ بې لارې کړی | نو هیڅوک ئې په لار کولې نشی | | |
| مِنْ هَادٍ ۚ | وَمَنْ یَّهْدِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | مِنْ مُّضِلٍّ ؕ | |
| څوك لار ښودونکې | او چاته چې هدایت اوکړی الله | پس نشته هغه لره | څوك ګمراهه کونکې | |
| اوچا ته چې الله ﷻ هدایت اوکړی | نو هغه هیڅوک ګمراه کولې نشی | | | |
| اَلَیْسَ اللّٰهُ | بِعَزِیْزٍ ذِی انْتِقَامٍ ﴿٣٧﴾ | وَلَئِنْ | سَاَلْتَهُمْ | مَّنْ |
| آیا نهٔ دې الله | غالب او خاوند دبدلې اغستلو | او که چری | تپوس اوکړې تهٔ ددوئ نه | چې چا |
| آیا الله ﷻ زبردست او انتقام اخستونکې نه دې ؟ | او که ته ددوئ نه تپوس اوکړې چې | | | |
| خَلَقَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | لَیَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ | قُلْ | اَفَرَءَیْتُمْ |
| پیدا کړی دی اسمانونه | او زمکه | نو ضرور به وائی دوئ چې الله | ورته اووایه | آیا پس وینئ تاسو |
| اسمانونه اوزمکه چا پیدا کړی دی؟ | نو دوئ به وائی چې الله (پیدا کړی دی)، | ته ورته اووایه چې ښه ده | | |
| مَّا | تَدْعُوْنَ | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | اِنْ اَرَادَنِیَ اللّٰهُ | بِضُرٍّ |
| هغه معبودان | چې رابلې ئې تاسو | بې دالله نه | که اراده اوکړی ماته الله | دضرر رسولو |
| نو داراته اوښائې چې تاسو دالله نه بغیر دچا عبادت کوئ که چری الله ماته څه تکلیف رارسول اوغواړی | | | | |

هَلْ هُنَّ | كٰشِفٰتُ | ضُرِّهٖٓ | اَوْ اَرَادَنِيْ | بِرَحْمَةٍ

ايا دا معبودان (بتان) | لرې كونكي دي | دضرر دهغه (زمانه) | يا اراده اوكړي ماته | په رحمت سره

نوآيا هغوئ دهغه (راكړې شوې) تكليف لرې كولې شي | يا كه الله ﷻ ماسره څه مهرباني كول

هَلْ هُنَّ | مُمْسِكٰتُ | رَحْمَتِهٖ ۭ | قُلْ | حَسْبِيَ اللّٰهُ ۭ | عَلَيْهِ

آيا دى دا بتان | بندونكى | درحمت دهغه | ورته اووايه | كافي دې مالره الله | هم په هغه باندې

اوغواړي | نو هغوئ دغه مهرباني منع كولې شى | ته اووايه چې زما دپاره صرف الله ﷻ كافي دې

يَتَوَكَّلُ | الْمُتَوَكِّلُوْنَ ۝ | قُلْ | يٰقَوْمِ | اعْمَلُوْا | عَلٰى مَكَانَتِكُمْ

بروسه كوى | بروسه كونكى | ورته اووايه | اے قومه زما | كار كوئ تاسو | په ځاني خپل |

بهروسه كونكى هميشه په هغه بهروسه كوى | ته ورته اووايه چې اې زما قومه ! تاسو په خپلو اعمالو كښې

اِنِّىْ عَامِلٌ ۚ | فَسَوْفَ | تَعْلَمُوْنَ ۝ لا | مَنْ يَّاْتِيْهِ

بيشكه زۀ خپل كار كونكې يم | پس زر به | پته اولږى تاسو ته | چې څوك دې چې راځى هغه ته |

مشغول اوسئ | زه هم پخپل عمل كښې مشغول يم | نو ډير زر به تاسو ته معلومه شي چې په چا باندې

عَذَابٌ | يُّخْزِيْهِ | وَيَحِلُّ | عَلَيْهِ | عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ۝

عذاب | چې رسوا به كړي هغه | او نازليږى | په هغه باندې | عذاب هميشه |

رسوا كونكې عذاب راتلونكي دې او په چا باندې هميشه عذاب واقع كيدونكي دې

**قوله تعالى:: اَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبْدَهٗ ۭ**

**دمومن دپاره الله ﷻ كافي دې:-** په يوقرات كښى ﴿اَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عِبَادَهٗ ۭ﴾دى.يعني الله ﷻ دخپل هريونده دپاره كافي دې په هغه باندې هريوكس ته بهروسه ساتل پكاردى.رسول اللهﷺ فرمائي چه هغه ته خلاصي ملاؤشوچاته چه داسلام هدايت اوضرورت په لحاظ باندې روزى وركړې شوه اوصبرورته هم نصيب شو.(ترمذى وغيره) (١) اې نبى! داخلق تادالله ﷻ نه علاوه دنوروخلقونه ويروى.داددوى جهالت او ضلالت دې اوالله ﷻ چه څوك ګمراه كړي هغه ته څوك لارنښى خودلې.څنګه چه چاته الله ﷻ لارخودلې وى هغه څوك بې لارې كولې نشى.الله ﷻ دلوې مرتبې والادې.په هغه باندې بهروسه كولو والا ته څوك څه نشى ونيلې،دهغه طرف ته ښكته كيدووالاكله هم محروم نه پاتې كيږى.دهغه نه زيات عزت والا څوك نشته،دغه شان دهغه نه زيات انتقام باندې قادرهم بل څوك نشته،څوك چه دهغه سره كفراوشرك كوى دهغه درسولانوسره جهګړې كوى هغه به هغوى ته ضرور سزا وركوى .

**قوله تعالى:: وَيُخَوِّفُوْنَكَ بِالَّذِيْنَ مِنْ دُوْنِهٖ ۭ**

**د ناشكرئى انتها:**:دمشركانو نور جهالت بيانيږى چه ددې سره چه الله ﷻ دهرڅه خالق ګڼړى بياهم د داسې معبودانوعبادت كوى چه هغوى چاته څه ګټه تاوان نشى رسولې هغوى ته څه حكم اختيار نشته. حديث كښى دى الله ﷻ ياد ساتئ هغه به دستاسوحفاظت كوى،الله ﷻيادساته نوهغه به هروخت خپل ځان سره موجود وينې. د اسانتيا وخت كښى دالله ﷻ په نعمتونوباندې شكراداكوه دسختئ په وخت

(١) ترمذى كتاب الزهد باب ماجاء فى الكفاف والصبر عليه:۲۳۴۹ ، وسنده حسن ، حاكم: ۱۲۲/٤، احمد: ۱۹/٦.

کښې به هغه ستا پکار راشي.که څه غواړې نو دالله ﷻ نه اوغواړه اوکه مددغواړې نو دالله ﷻ نه مدد اوغواړه. يقين ساته که ټوله دنياتاته څه نقصان رسول غواړي اودالله ﷻ اراده نه وي نوهغوی تاته هيڅ نقصان نشي رسولې .اوکه ټول راجمع شي اوتاته څه فائده درکول غواړي چه هغه الله ﷻ په مقدرکښې نه وي ليکلې نو هغوی تاته بالکل نشی درکولې،صحيفې اوچې شوی دی قلمونه اوچت کړې شوي دي.يقين اوشکرسره په نيکيانوکښې مشغول اوسه.په تکليفوباندې صبرکولوسره ډيرې نيکيانې ملاويږي. مدد دصبرسره دې.دغم اوخفګان سره خوشحالي اوراحت دې.هره سختی دخان سره اسانی لري.([1])(ابن ابی حاتم) نو اووايئ چه زمادپاره الله ﷻ کافي دې.دبهروسه کولووالادهغه په پاك ذات باندې بهروسه کوی.څنګه چه حضرت هود ﷺ خپل قوم ته جواب ورکړې وو.کله چه هغوی ونيلي ووزمونږپه خيال تاته زمونږ يومعبودڅه نقصان دررسولې دې.نوهود ﷺ اوفرمائيل چه زه الله ﷻ ګواه کوم او تاسو هم ګواه اوسئ چه زه دستاسوټولومعبودانونه بيزاره يم.تاسوټول که ماسره څه اخوه ديخوه کولې شئ نواوکړئ اوماته بالکل مهلت مه راکوئ.واوړئ ازماتوکل زماپه رب باندې دې چه هغه دستاسوټولورب دې. د دنيا په مخ چه څومره حرکت کولووالادی دټولواختياردهغه سره دې.زمارب په صحيح لارباندې دې.

. د طاقت سرچشمه ، توکل علی الله ::رسول الله حضرت محمد ﷺ فرمائي چه کوم دټولونه زيات طاقتور کيدل غواړي هغه دې په الله باندې بهروسه ساتی اوچه څوك دټولونه زيات مالداره کيدل غواړي هغه دې په دې څيزباندې کوم چه دالله ﷻ په لاس کښې زيات اعتمادکوی ددې په خاني کوم چه دهغه په خپل لاس کښې دې.اوڅوك چه دټولونه زيات بزرګ کيدل غواړي هغه دې دالله ﷻ نه ويريږي(ابن ابی حاتم) بيانې مشرکانوته ويناکښې فرمائيلی دی چه تاسوپخپله طريقه باندې عمل کوئ،زه په خپله طريقه باندې عمل کونکې يم.تاسوته به زرمعلومه شي چه په دنياکښې څوك ذليل اوخواريږي؟ او د اخرت په عذابونوکښې څوك ګيريږي؟الله تعالي دې مونږمحفوظ اوساتي.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّآ اَنۡزَلۡنَا | عَلَيۡكَ | الۡكِتٰبَ | لِلنَّاسِ | بِالۡحَقِّ ۚ | فَمَنِ |
| بيشکه مونږه نازل کړې دي | په تاباندې | دا کتاب | دپاره دخلقو | په حقه سره | پس هغه څوك |

بيشکه مونږ په باندې داکتاب دخلقو دهدايت دپاره په حق مضامينو مشتمل نازل کړې دې.نو څوك چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| اهۡتَدٰى | فَلِنَفۡسِهٖ ۚ | وَمَنۡ ضَلَّ | فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيۡهَا ۚ |
| چې په نيغه لارلاړ | وپس فائيده ئې دپاره دځان ده | اوڅوك چې بې لارې شو | پس بې لارې کيږی په ځان خپل |

په سمه لار روان شی | نو فائده ئې ځان دپاره ده | اوڅوک چې بې لارې شی نو ځان ته نقصان رسوی

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَآ اَنۡتَ | عَلَيۡهِمۡ | بِوَكِيۡلٍ ۠ | اَللّٰهُ يَتَوَفَّى | الۡاَنۡفُسَ | حِيۡنَ |
| اونۀ ئې ته | په هغوئ باندې | ساتونکې ذمه وار | الله قبض کوی | روحونه | په وخت |

اوته په دوئ باندې څه ذمه وار خو نه يئ | هم الله ﷻ روحونه دمرګ په وخت کښې قبض کوی

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَوۡتِهَا | وَالَّتِىۡ | لَمۡ تَمُتۡ | فِىۡ مَنَامِهَا ۚ |
| دمرګ ددغې نفسونو کښې | او هغه نفس | چې نۀ وی مړ | قبض کوی هغه په خوب دهغه کښې |

او چې د چا مرګ نه وی راغلې نو دخوب په وخت کښې ئې روح قبض کوی

[1]) احمد: ۳۰۷/۱ ترمذی کتاب صفة القيامة باب حديث حنظلة:۲۵۱٦، وسنده حسن شعب الايمان : ۱۰۷٤.

فَيُمۡسِكُ الَّتِيۡ قَضٰى عَلَيۡهَا الۡمَوۡتَ وَيُرۡسِلُ الۡاُخۡرٰٓى
پس منع کوی | هغه روح | چی فیصله کوی | په هغه باندي | دمرګ | او رالیږي نور روحونه
بیا هغه (روحونه) ایسار کړی | چې دمرګ حکم پرې لګولې شی | او باقی روحونه ترې

اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوۡمٍ يَّتَفَكَّرُوۡنَ ۝
نیتی مقررې ته | بیشکه په دې کښی | ډیرې نښې دی | دپاره دهغه خلقو | چی فکر کوی
تریومقررې نیتې پورې راپریږدی | بیشکه په دې کښې هغه خلقو دپاره نښې دی|چې سوچ فکر کوی

اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ شُفَعَآءَ ؕ قُلۡ اَوَلَوۡ كَانُوۡا
آیا نیولی دی دې خلقو | بې دالله نه | نور سفارشیان | ورته اووایه | آیا سفارش به کوی اګر که وی هغوئ
او دوئ دالله ﷻ نه سوا نور خلق (ځان له سفارشیان) جوړکړی دی | ته ورته اووایه چې

لَا يَمۡلِكُوۡنَ شَيۡـًٔا وَّلَا يَعۡقِلُوۡنَ ۝ قُلۡ لِّلّٰهِ الشَّفَاعَةُ
چی نۀ لری اختیار | دهیڅ څیز|اونۀ پوهیږی په هیڅ څیز|ورته اووایه|چی الله لره دې|اختیار دسفارش
سفارش خو هم ټول دالله ﷻ په اختیار کښې دې | ...............داسمانونو اودزمکې

جَمِيۡعًا ؕ لَهٗ مُلۡكُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ ؕ ثُمَّ اِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ۝
ټول | هغه لره | بادشاهي داسمانونو | او دزمکې ده | بیا به هغه ته | واپس کړې شئ تاسو
بادشاهي یوازې د هغه ده | ..............................اوبیا به ټول هغه ته واپس پیش کیږئ|

وَاِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَحۡدَهُ اشۡمَاَزَّتۡ قُلُوۡبُ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ
او هر کله چی | یادکړې شی الله | یوازې | نو دننه سوزی | زړونه | دهغه کسانو | چی ایمان نۀ لری
اوکله چې(دمعبود په حیثیت)یوازې د یوالله نوم واخستې شی|نود هغه خلقو زړونه سوزی شی|چې په

بِالۡاٰخِرَةِ ۚ وَاِذَا ذُكِرَ الَّذِيۡنَ مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اِذَا هُمۡ
په آخرت باندي|او هر کله چی | ذکر کیږی | دهغه معبودانو | چی بې دالله نه دی | نو یودم هغوئ
آخرت باندې ایمان نه راوړی| اوهرکله چې دالله ﷻ نه سوا د نورو(معبودانو)ذکر اوکړې شی

يَسۡتَبۡشِرُوۡنَ ۝
خوشحالیږی |
نو هغه وخت دوئ خوشحالیږی|

**قوله تعالی: اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡكَ الۡكِتٰبَ لِلنَّاسِ بِالۡحَقِّ ۚ**

**ګمراه کیدونکي خپل نقصان کوی:-** الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته خطاب کښی فرمائی چه مونږ په تا باندې قران د رښتیا یو او صحیح والی سره دټولو انسانانو او پیریانو د هدایت دپاره نازل کړو.دا فرمان منلو والا به صحیح لارحاصلولو سره خپله فائده کوی او ودې لارې سره نور خلق په غلطه لار باندې تلو سره خپل ځان

نه نقصان ورکوی.ته ددې ذمه وارنه نې چه خواه مخوه دې هریوکس دااومنی.ستاپه ذمه صرف هغوی ته رسول دې حساب کولوالامونږیومونږپه هرموجودځیزکښې چه څه غوارووړکوو.

قوله تعالى:: اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا

وفات کبری او صغری دواړه دالله ﷻ په قبضه کښې دی::وفات کبرې چه په هغې کښې زمونږلیږلې شوې فرښتې روح قبض کوی اووفات صغرې کوم چه دخوب په وخت کښې وی زمونږپه قبضه کښې دی ځکه چه ایت کښې دی.﴿وَهُوَ الَّذِىْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ﴾ الخ،یعنی هغه ذات څوك چه تاسو دشپې وفات کړی اودورځې چه تاسوڅه کوې هغه ته معلوم دی بیاتاسودورځې پاسوی چه مقررکړې شوې وخت پوره کړی،بیابه ټول خلق هم دهغه طرف ته ځی او هغه به تاسوته د ستاسو د عملونو خبر درکړی هغه په خبل بندګانوغالب دې هغه تاسوباندې نظرکونکې فرښتې رالیږی تردې چه تاسوته مرګ نه وی راغلې نوزمونږلیږلې شوې فرښتې دستاسوروح قبض کړی اوهغوی اوکمې نه کوی.نوپه دې دواړوایتونوکښې هم داذکرشوی دې مخکښې وروکې مرګ بیا د لوې مرګ ذکرشوې دی.دلته مخکښې غټ مرګ اوبیادوړوکی مرګ بیان شوې دې.ددې نه داهم پته لږی چه په ملاء اعلی کښې روحونه جمع کیږی ځکه چه دبخاری اومسلم په حدیثونوکښې دی.رسول اللّٰهﷺ فرمانی چه په تاسو کښې څوك په خپل کټ کښې اوده کیدوته لاړشی نودخپل لنګ لاندنی طرف باندې دې هغه صفاکړی پته نه لږی چه په هغه باندې څه ځیز وی؟ بیادې دادعااووانی.باسمك ربي وضعت جنبي اوفعه ان امسكت نفسي فارحمها وان ارسلتها فاحفظها بما تحفظ به عبادك الصالحين.یعنی زما پالونکی ربه ادستادپاك نوم په برکت سره اوده کیږم اودستاپه رحمت به پاسم،که ته زماروح واخلې نوپه هغه باندې رحم اوکړه اوکه ته هغه اولیږې نو د هغه داسې حفاظت اوکړه ځکه چه دخپل نیك بندیانو کوې. دا بعضې بزرګانوقول دې چه د مړو روحونه کله چه هغوی مړه اودژوندوروحونه کله چه هغوی اوده شی قبض کړې شی اوبه خپلوکښې پیژندګلوکوی ترڅوچه الله ﷻ غواړی بیادمړوروحونه خوهغلته پاتې کړې شي اونورروحونه په مقرروخت باندې پریخودې شی،اوپه دې کښې کله هم غلطی نه کیږی. د غور او فکر کولوچه څوك عادت دی هغوی دالله ﷻ په دې یوه خبره کښې ډیردلیلونه اوموندی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قُلِ | اللّٰهُمَّ | فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | |
| ورته اووایه | اے خدایه | پیدا کونکیه داسمانونو | او دزمکې | |

ته ورته اووایه چې اې الله ﷻ : داسمانونو او زمکې پیداکونکیه

| | | | |
|---|---|---|---|
| عٰلِمَ الْغَيْبِ | وَالشَّهَادَةِ | اَنْتَ تَحْكُمُ | بَيْنَ عِبَادِكَ |
| پوهیدونکیه په پټ | او په ښکاره | ته به فیصله کوې | په منځ دبندګانو خپلو کښې |

په پټو او په ښکاره پوهیدونکیه هم ته به دخپلوبندګانو په هغه خبرو کښې په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْمَا | كَانُوْا | فِيْهِ | يَخْتَلِفُوْنَ○ | وَلَوْ |
| په هغه کارونو کښې | چې وو دوئ | په هغې کښې | چې اختلاف به نې کولو | او که چرې وی |

کومو کښې چې دوئ جګړې کولې فیصله کوې ........................اوکه د ظالمانو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَنَّ لِلَّذِيْنَ | ظَلَمُوْا | مَا | فِى الْاَرْضِ | جَمِيْعًا |
| دپاره دهغه کسانو | چې ظلم نې کړې دې | هغه څه | چې په زمکه کښې دی | ټول |

(مشرکانو) سره ددنیا ټول مالونه موجود شی اودومره ورسره نور هم نودقیامت د ورځې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَّمِثۡلَهٗ | مَعَهٗ | لَافۡتَدَوۡا | بِهٖ | مِنۡ سُوۡٓءِ الۡعَذَابِ |
| اوپه مثال دهغې نور\|دهغه سره\|نوخامخا به په فديه كښې وركړي\|هغه هرڅه\|دپاره دبچكيدودسخت عذاب نه | | | | |
| دسخت عذاب نه دخلاصيدو دپاره به هغه ټول وركول اوغواړي \| | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ | وَبَدَا | لَهُمۡ | مِّنَ اللّٰهِ | مَا | لَمۡ يَكُوۡنُوۡا | |
| په ورځ دقيامت \| | او ښكاره به شي \| | دوئ ته \| | دطرفه دالله نه \| | هغه څه \| | چې نه وو دوئ | |
| اوپه دوئ باندې به دالله ﷻ دطرفنه (عذاب) ښكاره شي \|د كوم چې به دوئ گمان | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَحۡتَسِبُوۡنَ ﴿۴۷﴾ | وَبَدَا | لَهُمۡ | سَيِّاٰتُ | مَا | كَسَبُوۡا |
| چې گمان به نې كولو دهغې \| | او ښكاره به شي \| | دوئ ته \| | بدانجامونه \| | دهغې\| | چې كړې وې دوئ |
| هم نه كولو \| ..............اوخپل ټول بدكارونه به ورته ښكاره شي\| اوپه كوم عذاب | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَحَاقَ | بِهِمۡ | مَّا | كَانُوۡا | بِهٖ | يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿۴۸﴾ |
| او چاپيره به شي \| | په دوئ \| | هغه (عذاب) \| | چې وو دوئ \| | چې په هغې پورې به\| | نې ټوقې كولې |
| پورې چې به نې ټوقې مسخرې كولې هغه بهٔ ترې نه راتاؤ شي (او دوی به راگير كړي) | | | | | |

.قوله‌تعالي:: قُلِ اللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ

**دعقل اوشعورنه خلاص خلق دالله ﷻ سره شرك كوي:**-الله ﷻ دمشركانومذمت كوي چه هغوی بوتانوته خپل معبودان اوخپل سفارشيان اودوستان گڼري چه دهغې نه څه دليل شته اونه څه ضرورت.اوهغوی سره څه اختيارشته اونه څه عقل اوشعور،نه دهغوی سترگې شته اونه غوږونه.هغه خوكانړي دي چه هغوی دحيوانانونه هم خراب دي،په دې وجه باندې خپل نبي ته حكم اوكړوچه دوی ته اووايه چه څوك هم نشته چه هغه دالله په مخكښې شوندې اوخوزوي.ترڅوچه دهغه مرضي اواجازت حاصل نه كړي. د ټولوشفاعتونومالك هغه دې.دزمكې اواسمان يواځې بادشاه هغه دې،دقيامت په ورځ به تاسوټول د هغه طرف ته ځئ،هغه وخت به هغه دانصاف سره دستاسوفيصلې كوي اوهغه به هريوته دهغه دعمل مطابق پوره پوره بدله وركوي.ددې كافرانوداسې حالت دې چه دتوحيد كلمه اوريدل نه غواړي.دالله ﷻ د وحدانيت ذكراوريدلوسره دهغوی زړه تنگ شي اوددې اوريدل هم دهغوی خوښ نه وي.ددوی زړه په دې كښې نه لږي.كفراوكبرهغوی اونيسي.څنگه چه په بل ايت كښې دي.﴿اِنَّهُمۡ كَانُوۡٓا اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ يَسۡتَكۡبِرُوۡنَ ﴿۳۵﴾﴾يعنې هغوی ته چه كله اوونيلې شي چه دالله ﷻ نه سوادعبادت لائق څوك نشته نودوی كبر كوي اونه نې مني.څكه چه دهغوی زړه دحق نه منكردې په دې وجه باطل زرقبلوی.كوم خائې چه د بتانو او نورو خدايانو ذكرراشي نوهغوی خوشحاله شي.

.قوله‌تعالي:: اَنۡتَ تَحۡكُمُ بَيۡنَ عِبَادِكَ

**دقيامت په ورځې به اختلافاتوفيصله اوشي:**دمشركانوچه دتوحيدنه كوم نفرت اوشرك سره كوم محبت دې دهغې بيان كولونه پس واحدلاشريك الله ﷻ خپل نبيﷺ ته فرمائي چه ته صرف يوالله ته اوازكوه چه هغه دزمكې اواسمان خالق دې اودائې هغه وخت پيداكړي دی كله چه داڅه نه وواونه ددې څه نمونه وه.هغه ته دپټ اوښكاره دهرڅه علم دې.داخلق چه په خپلوكښې څه اختلافات ساتي دټولوفيصله به هغه ورخ اوشي كله به چه دوی دقبرونونه راوځي اودقيامت ميدان ته به راځي.حضرت ابوسلمه بن عبدالرحمن دحضرت عائشه نه تپوس اوكړوچه حضورﷺ به دتهجدمونځ په كومه دعاسره شروع

کړلو؟حضرت عائشه فرمائي چه ددې دعانه. اللهم رب جبريل وميكائيل واسرافيل فاطر السموات والارض عالم الغيب والشهادة انت تحكم بين عبادك فيما كانوا فيه يختلفون اهدني لما اختلف فيه من الحق باذنك انك تهدي من تشاء الى صراط مستقيم
يعنې اې دجبرئيل ميكائيل اواسرافيل ربه اې دزمکې اواسمان بې نمونې جوړونکيه ،اې دحاضر او غائب علم والاته به دخپلوبندګانو داختلافاتوفيصله اوکړې په کوم څيزونو کښې چه اختلاف شوې دې ته ماته په خپل فضل باندې هغې کښې حق لاراوښايې.ته چه چاته غواړې صحيح لارورته اوښائې.(مسلم)حضورﷺ فرمائي چه کوم بنده دادعالولي نودقيامت په ورځ به الله ﷻ خپلو فرښتوته وائي چه زمادې بنده زمانه وعده اخستلې ده،داوعده پوره کړئ،نوهغه به جنت ته بوتلې شي.هغه دعا دا ده. اللهم فاطر السموت والارض عالم الغيب والشهادة انى اعهد اليك فى هذه الدنيا اشهد ان لا اله الا انت وحدك لا شريك لك وان محمدا عبدك ورسولك فانك ان تكلنى الى نفسى تقربنى من الشر وتباعدنى من الخير وانى لا اثق الا برحمتك فاجعل لى عندك عهدا توفينيه يوم القيمة انك لا تخلف الميعاد.اې الله،اې اسمان اوزمکه بې نمونې پيداکولووالا ،اې دپټ اوښکاره علم لرلووالا،زه دستاسره پدې دنياکښې عهدکوم چه زماپه ګواهۍ کښې دستانه علاوه څوك د عبادت لائق نشته ته يواځې ئې دستاڅوك شريك نشته اوزماداهم ګواهي ده چه محمدﷺ دستابنده اورسول دې ته که ماته خپل ځان خواله کړې نوزه به شر ته نزدې اوښه والی نه لرې شم.انې الله ماته صرف دستار حمت اوبهروسه پکارده.نوته زمانه هم عهدواخله کوم به چه ته دقيامت په ورځ پوره کوې اوبې شکه ته وعده خلاف نه ئې.ددې حديث روايت کونکې سهيلؒ فرمائي چه ماقاسم بن عبدالرحمنؒ ته کله اووئيل چه عون داشان داحديث بيانوی نواووئې فرمائيل سبحان الله زمونږپرده کونکې ماشومانو جينکو ته هم داحديث يادډې.(مسنداحمد)
حضرت عبدالله بن عمروؓ يوکاغذراويستواوئې فرمائيل چه دادعامونږته ر سول الله ﷺ خودلې ده. اللهم فاطر السموت والارض عالم الغيب والشهادة انت رب كل شئ واله كل شئ اشهد ان لا اله الا انت وحدك لا شريك لك وان محمدا عبدك ورسولك والملائكة يشهدون اعوذبك من الشيطان وشركه واعوذبك ان اقترف على نفسى اثما اواجره الى مسلم. يعنى اې الله زمکه اواسمان بې نمونې پيداکولووالادپټ اوښکاره علم لرلووالاته دهرڅيزمالك ئې او د هر يو څيزمعبودئې زه ګواهي ورکوم چه دستانه علاوه څوك دعبادت لائق نشته ته يواځې ئې دستاڅوك شريك نشته اومحمدﷺ دستابنده اورسول دې اوفرښتې هم داګواهي ورکوی.زه دشيطان نه اودهغه د شرك نه ستاپناه ته راځم زه ستانه پناه غواړم چه زه پخپله څه ګناه اوکړم يابل مسلمان طرفته راښکم.
ابوعبدالرحمنؒ فرمائي چه دادعاحضورﷺ عبدالله بن عمروؓ ته خودلې وه دابه هغه داوده کيدوپه وخت کښې لوستله.(مسندامام احمد)اوروايت کښې دی چه ابوراشدجبرانيؒ دعبدالله بن عمرونه د يو حديث اوريدوخواهش اوکړونو عبدالله يوکتاب دهغه مخې ته کيخودو اواوئې فرمائيل دادې کوم چه ماته رسول اللهﷺ ليکلې وو ما اوکتل نوپه هغې کښې ليکلې شوی ووچه ابوبکرؓ اوئيل يا رسول الله زه سحراومابنام څه وايم؟ حضورﷺ اوفرمائيل داوايه. اللهم فاطر السموت والارض عالم الغيب والشهادة لا اله الا انت رب كل شئ ومليكه اعوذبك من شر نفسى وشر الشيطان وشركه او اقترف على نفسى سوءا اواجره الى مسلم.(ترمذی وغيره) د مسند احمد په حديث کښې دی چه حضرت ابوبکرصديقؓ فرمائي چه ماته دالله ﷻ رسولﷺ سحراومابنام ددې دعاونيلو حکم کړې وو.

قوله تعالى: وَلَوْ أَنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا
قيامت کښې به مشرکانو ته هيڅ هم پکار نه ورځي: بل روايت کښې دظالمانونه مرادمشرکان دی. فرمائي که هغوی سره هم دومره زمکې د مخ د خزانې نورې وی نودوی به دقيامت دورځې دعذاب په بدله کښې ورکولوډپاره تيارشي خوپه هغه ورځ به څه بدله اوفديه نه قبليږی. اګرکه ټوله زمکه سرو زروکړې څنګه چه په بل ايت کښې بيان دې.نن به دالله هغه عذابونه دهغوی مخې ته راشي چه چرته به دهغوی

په خیال کښې هم نه وو.کوم کوم حرام کارونه، بدکارونه ،اوګناهونه اوخرابیانې هغوی په دنیا کښې
کړې وودهغې ټولوسزابه نن خپلې مخې ته وینې. په دنیا کښې به ئې چه دکوموسزاګانوپاره کښې
اوریدلوسره خندل نن به هغې ګناهونو د څلورو طرفونه ګیرکړې وی.

فَاِذَا مَسَّ الْاِنْسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا ثُمَّ اِذَا خَوَّلْنٰهُ

پس هر کله چې | اورسیږی | انسان ته | څه تکلیف|نو رابلئ مونږ| بیا چې کله|اورکړو مونږ هغه ته

اوڅه وخت چې انسان ته تکلیف اورسیږی انو مونږ رابلی | بیا چې مونږ ورته دخپل طرفنه

نِعْمَةً مِّنَّا قَالَ اِنَّمَآ اُوْتِيْتُهٗ عَلٰى عِلْمٍ بَلْ

نعمت | دطرفه زمونږ نه انو وائی | بیشکه راکړې شوې دې ماته دا | په وجه دعلم | (نه) بلکه

څه نعمت ورکړو | نو وائی چې داخو ماته پخپل علم اوعقل سره ملاؤ شوې دی| ............ (نه) بلکه

هِیَ فِتْنَةٌ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ قَدْ قَالَهَا

دا ازمیښت دې | ولیکن | زیات ددوئ | نه پوهیږی | بیشکه ونیلی ده دا خبره

دا یو امتحان دې | خو زیات خلق (په دې خبره) نه پوهیږی | ...................داخبرې هغه خلقو

الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا

هغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه ووّ | پس هیڅ پکار رانغلل دهغوئ | هغه څه| چې ووّ هغوئ

هم کړې وې| کوم چې د دوی نه وړاندې ووا خو هغوی چې څه کړی وو هغې ورته هیڅ فائده اونه

يَكْسِبُوْنَ فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا وَالَّذِيْنَ

چې کول به ئې | پس اورسیدل هغوئ ته | بدانجامونه | دهغې | چې کړی ووّ هغوې | او هغه کسان

رسوله | ................. بلکه دخپلو بدو عملونه سزا ورته ملاو شوه | ............او په دوئ کښې چې

ظَلَمُوْا مِنْ هٰۤؤُلَآءِ سَيُصِيْبُهُمْ سَيِّاٰتُ مَا

چې ظلم ئې اوکړو | ددې خلقو نه | ډیر زر به اورسیږی هغوئ ته | بدانجامونه | دهغې|

څوک ظالمان دی | هغوی ته به هم دخپلو بدو عملونه سزا ملاویږی

كَسَبُوْا وَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ اَوَلَمْ يَعْلَمُوْٓا

چې کړی ووّ هغوئ | اونهٔ دی دوئ | عاجزه کونکې مونږ لره | آیا اونهٔ ده معلومه دوئ ته

...... ........او دوئ (الله ﷻ په خپلو تدبیرونوسره) عاجزه کولې نشی | آیادوئ ته دا معلومه نه ده

اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ

چې بیشکه الله | فراخه کوی رزق | دپاره دهغه چا | چې غواړی هغه | او په اندازه کوی(رزق)

چې الله ﷻ دچاپه حق کښې اوغواړی|نو هغه دپاره روزی فراخه یا لنډه تنګه کړی

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ۝ قُلْ يَا عِبَادِيَ

بیشکه په دې کښې | خامخا نښې دي | دپاره دهغه قوم | چې ایمان راوړي | اووایه | اے بندګانو زما

به دې کښې د مومنانو دپاره ډیرې نخښې پرتې دي | ته (زما دطرفنه خلقو ته) اووایه چې

الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰ أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ ۚ

هغه کسانو | چې زیاتې مو کړې دي | په نفسونو خپلو باندې | مه نا امیده کیږئ | د رحمت دالله نه

ای زما هغه بندګانو چې په خپلو ځانونو مو زیاتې کړې دي | دالله ﷻ د رحمت نه مه نا امیده کیږئ

إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا ۚ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ۝

بیشکه الله | معاف کوي ګناهونه | ټول | بیشکه هغه | هم هغه بښونکې مهربانه دې

بیشکه الله ﷻ به ستاسو ټول ګناهونه معاف کړي | بیشکه الله ﷻ بخښونکې زیات رحم کونکې دې

وَأَنِيبُوا إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا لَهُ مِنْ قَبْلِ

اوواپس راشئ | خپل رب ته | او غاړه کیدئ | احکمونو دهغه ته | مخکښې ددې نه |

او تاسو خپل رب ته رجوع اوکړئ | او دهغه تابعدار جوړ شئ | د دې نه مخکښې چې په تاسو

أَنْ يَأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ ۝ وَاتَّبِعُوا أَحْسَنَ

چې راشي تاسو ته | عذاب | بیا به ستاسو سره هیڅ امداد نه کیږي | او پیروي کونئ | دښه طرف

باندې عذاب راشي | بیا به (هغه وخت) ستاسو مدد نشي کولې | او (ای خلقو) تاسو ته چه د خپل رب

مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ

دهغې چې نازل کړې شوي دي تاسو ته | د طرفه درب ستاسو نه | مخکښې ددې نه | چې راشي تاسو ته

د طرفه کوم حکمونه نازل شوي دي | په هغې کښې په افضل عمل اوکړئ | ددې نه وړاندې چې په تاسو

الْعَذَابُ بَغْتَةً وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ۝ أَنْ تَقُولَ نَفْسٌ

عذاب | ناساپه | او بې تاسو | ناخبره | هسې نه چې بیا اووائي | یو نفس |

ناڅاپه عذاب راشي | او تاسو پرې خبر هم نه یئ | ...... د دې دپاره چې یو نفس دا اونه وائي چې

يَا حَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطْتُ فِي جَنْبِ اللَّهِ وَإِنْ كُنْتُ

اے افسوس دې | په هغه ګناه چې کړې ده ما | په طرف یعني په حق دالله کښې | او بیشکه چې ومه زه

افسوس دې په هغه کوتاهئ چې ما دالله ﷻ په حق کښې کړې وه | .................. اوما صرف

لَمِنَ السَّاخِرِينَ ۝ أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ اللَّهَ هَدَانِي لَكُنْتُ

دټوقو کونکونه | یاد اووائي | چې ارمان دې که الله | هدایت کړې وې ماته | نو خامخا به ومه زه

ټوقې کولې | ..........یادا اووائي چې که الله ﷻ راته هدایت کړې وې | نو زه به په پرهیزګارانو

مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴿٥٧﴾ أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِي

دمتقیانونه | یادا اووا نی | په کوم وخت کښې | چې اووینی | عذاب | افسوس که وې ماله

کښې شامل ووم | یا چې عذاب اووینی نو دا به اووائی که چرته زه (دنیاته) واپس لاړم |

كَرَّةً فَأَكُونَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٨﴾ بَلَى قَدْ جَاءَتْكَ آيَاتِي

تلل بیا | پس شم به زه | دنیکانو خلقو نه | ولې نه | بیشکه راغلی وې تاته | آیتونه زما

..........نو نیکانو کښې به شامل شم | (الله ﷻ به اوفرمائی ولې نه) زما آیتونه تاته درغلی وو

فَكَذَّبْتَ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتَ وَكُنْتَ مِنَ الْكَافِرِينَ ﴿٥٩﴾

نو دروغ اوګنړل تا | هغې لره | او تکبر اوکړو تا | اووې ته | دکافرانونه |

خو تا هغه دروغ اوګنړل | اوتکبردې اوکړو | اوپه کافرانو کښې شامل پاتې شوې

**قوله تعالى:: فَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا**

**تنګی اواسانی دازمیښت دپاره دی:-** الله ﷻ دانسان حالت بیانوی چه دتکلیف په وخت کښی خوهغه ژړا او فریادشروع کړی دالله ﷻ طرف ته پوره رجوع اوکړی خوچه کله ترې تکلیف لرې شی اوراحت او سکون ورته ملاؤشی نودې سرکش اوکبرکونکې شی اووائی چه داخودالله ﷻ په ذمه باندې زماحق دې. زه دالله په نزددې حقداروم.مادخپل عقل اوفیصلوپه وجه باندې دانعمت حاصل کړو.الله ﷻ فرمائی خبره داسې نه ده بلکه دازمونږدطرف نه ازمیښت دې اګرچه مونږته دمخکښې نه علم دې خودامونږ ظاهرول غواړواوکتل غواړوچه دوی دنعمت شکراداکوی اوکه نه؟خودوی بې علمه خلق دی.دعوی کوی دخولې نه خبره اوباسی خوداصل نه ناخبره وی.هم دغه دعوی اوخبره ددوی نه مخکښې خلقو هم کړې ده خودهغوی خبره صحیح نشوه اودې.نعمتونویابل څه څیزاودهغوی عملونوهغوی ته څه.فائده ورنه کړه.څنګه چه په هغوی باندې تکلیف راغې دغه شان به هغوی باندې یوخل دهغوی د بد علمونو تکلیف راشی اودوی به الله ﷻ عاجزیاسترې نه کړې شي.څنګه چه قارون ته دهغه قوم وئیلی ووچه دومره خان مه بنایه،الله ﷻ خان خوښونکی نه خوښوی.دالله ﷻ درکړې شوی نعمتونه خرچ کړه اواخرت اوګټه.په دې دنیاکښې هم فائده حاصل کړه اوچه څنګه الله ﷻ دتاسره سلوك کوی ته هم دخلقوسره احسان کوه.په زمکه باندې فسادمه خوروه الله ﷻ مفسدخلق نه خوښوی.په دې باندې قارون اووئیل چه داټول نعتمونه دولت اوعزت هغه په خپل علم اوهنرباندې حاصل کړی دی.الله ﷻ فرمائی چه هغه ته معلومه نه وه چه دهغه نه مخکښې مال جمع کولووالامونږهلاك اوبربادکړل.مجرمانونه به دهغوی د ګناهونوباره کښې تپوس نه کیږی؟الغرض زیات مال جمع کول اوالله ﷻ هیرول دکفرخاصیت دې. د کافرانوقول دې چه مونږسره مال زیات دې مونږته به څنګه عذاب ملاؤشي اوس هغوی ته داهم معلومه نه ده چه درزق مالك الله ﷻ دې چه چاته غواړی زیات ورکړی اوچاته غواړی کم ورکړی.په دې کښې د ایمان والودپاره دعبرت نخې دی.

**قوله تعالى:: قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنفُسِهِمْ**

**دالله ﷻ دطرف نه دتوبې عام دعوت:-** پدې ایت کښې ټولونافرمانوته که هغوی مشرکان او کافران هم دی ته دتوبې دعوت ورکړې شوې دې اوورته وئیلی شوی دی چه دالله ﷻ ذات غفوراورحیم دې اوهغه د هر

بوتوبه کونکی توبه قبلوی.دهرښکته کیدونکی طرفته متوجه کیږی.دتوبه کونکی زاړه ګناهونه معاف کوی که هغه هرڅنګه وی اوهرڅومره وی اوکه هروخت وی.

**شرک بې د توبې نه نه معاف کیږی:**: داایت بغیردتوبې نه دګناهونودمعاف کولوباره کښې ګڼړل صحیح نه دی.ځکه چه شرک خوبې توبې نه معاف کیږی.صحیح بخاری کښې دی چه څه مشرکان چه هغوی به قتل اوزناهم کړې وه دحضورﷺ مخکښې به حاضرشول چه دستاسودادین اوخبرې زمونږپه هرلحاظ باندې خوښوې دی خوداغټ غټ ګناهونه کوم چه زمونږنه شوی دی ددې کفاره به څه وی؟په دې باندې آیت ﴿وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ اوداآیت نازل شو.دمسند احمدپه حدیث کښې دی چه حضورﷺ فرمائی چه ماته ټوله دنیااوپه دې کښې دټول څیزملاویدوباندې دومره خوشحالی نه ده ملاوشوې څومره چه دې ایت په نازلیدوباندې ملاوشوه.یوکس تپوس اوکړوچه چاشرک کړې وی؟حضورﷺ د لږ ساعت دخاموشې نه پس اوفرمائیل.خبردارچه چاهم شرک کړې وی،درې خله ئې دا اوفرمائیل. مسند احمد په یوحدیث کښې دی چه یوبوډاکس د کونټې په مددباندې حضورﷺ ته حاضر شو اوحضورﷺ ته ئې اووئیل چه زماغټ واړه ګناهونه ډیرزیات دی ماته به معافی ملاوشی؟حضورﷺ اوفرمائیل چه ته د اللهﷻدتوحید ګواهی نه ورکوې؟هغه اووئیل چه او،اودستادنبوت ګواهی هم ورکوم.حضورﷺ اوفرمائیل چه دغه ګناهونه معاف دی.ابوداؤدترمذی کښې دی حضرت اسماء رضی الله عنها فرمائی مادرسول اللهﷺ نه اوریدلی دی هغوی ددې ایت تلاوت داسې کولو ﴿اِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ﴾ اودا آیت مې ترې داسې واوریدلو. ﴿قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ﴾ نوددې ټولو حدیثونونه ثابت شوه چه په توبه باندې ډیرګناهونه معاف کیږی.انسان ته درب درحمتونونه مایوسه کیدل نه دی پکارکه ګناهونه هرڅومره وی.دتوبې اورحمت دروازه هروخت کهلاؤوی اوډیر فراخه دې. د اللهﷻ ارشاددې.﴿اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ﴾ چه خلقوته معلومه نه ده چه الله ﷻ د خپلو بندیانوتوبه قبلوی. اوفرمائی﴿ وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ﴾ څوك چه خراب کاراوکړی اوپخپل ځان باندې ظلم اوکړی بیاالله ﷻ ته توبه اوکړی نوهغه به الله ﷻ بخښونکې اومهربانه ذات اومومی. د منافقانو سزاچه هغه به ددوزخ په لاندینۍ طبقه کښې وی دهغې باره کښې فرمائی.﴿اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا﴾ یعنی ددې نه هغوی خلاص دی څوك چه توبه اوکړی اوځان صحیح کړی.دانصاراؤ دا شرك چه هغوی به الله ﷻ په دریوکښې دریم ګڼړلوذکرکولوسره دهغوی دسزاګانونه مخکښې فرمائی.﴿ وَاِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا عَمَّا يَقُوْلُوْنَ﴾ که دوی خپلې خبرې پرې نه خودلې.نوبیاالله ﷻ دلوې شان اوجلال والافرمائی چه دوی الله ﷻ ته توبه ولې نه کوی اوولې دهغه نه استغفارنه غواړی؟هغه خوډیررحم کونکې اوغفارذات دې.هغه خلقو کومیچه خندقونه کړی وواومسلمانان ئې په اورکښې اچولی ووذکرکولوسره فرمائی چه څوك مسلمانانوته تکلیف ورکوی اوبیاهم توبه نه کوی نودهغوی دپاره ددوزخ اواورعذاب دې.امام حسن بصری رحمه الله فرمائی چه دالله ﷻ کرم ته اوګورئ چه دخپل دوستانوقاتلان هم دتوبې طرف ته راغواړی. ددې مضمون نورهم ډیرایتونه دی.

**دیو کم سلو کسانو د قاتل قصه:**: دبخاری اومسلم په حدیث کښې دهغه کس واقعه هم شته چه هغه یوکم سل کسان قتل کړی وو بیائې دبنی اسرائیلو یوعبادت ګذارنه تپوس اوکړوچه ماته دپاره دتوبه کول شته؟هغه انکاراوکړو،هغه هغه هم قتل کړو.بیائې دیوعالم نه تپوس اوکړوهغه ورته اووئیل چه ستا او توبې مینځ کښې څه روکاوټ نشته،اوحکم ئې ورته اوکړوچه دتوحیدمنونکوخلقوکلی ته لاړشه.نوهغه کس دهغه کلی طرف ته روان شوخوپه لارکښې مړشو.درحمت اوعذاب فرښتوپه خپلو کښې اختلاف پیدا شو.الله ﷻ ورته دزمکې دناپ کولوحکم اوکړونویولیشت دنیك خلقوکلی ته نزدې ووکوم طرف ته چه هغه هجرت کولواودې ئې دهغوی سره ملاؤکړواودرحمت فرښتودهغه روح واخستلو.داهم ذکرشوی

دی چه هغه دمرګ په وخت کښې په سینه باندې هغه طرف ته روان شو.اوداهم ذکرشوی دی. چه دنیك خلقوکلی ته دنژدې کیدواودخراب خلقوکلی نه دلرې کیدوورته الله ﷻ حکم کړې وو.ددې حدیث د اخلاصه ده اوټول حدیث پخپل ځائې بیان شوی دې.حضرت ابن عباس؄ ددې ایت په تفسیر کښې فرمائی چه الله ﷻ ټول بندیان دتوبې طرف ته رابللی دی.هغوی هم چاچه به حضرت مسیح؈ ته الله ونیل،هغوی هم چاچه به ورته دالله ﷻ ځوئ ونیل،هغوی هم چاچه به حضرت عزیر؈ ته دالله ﷻ ځوئ ونیل،هغوی هم ځوك چه الله ﷻ ته فقیروانی هغوی هم ځوك چه دالله ﷻ لاسونه بندیادوی او هغوی هم ځوك چه الله ﷻ ته په دریوکښې دریم وائی.الله تعالی دې ټولوته فرمانی چه دوی دالله ﷻ طرف ته ولې نه بنکته کیږی.اوولې دخپلو ګناهونومعافی نه غواړی؟الله ﷻ خوبخونکې دې اوډیررحم اوکرم کولو والادې.بیادتوبې دعوت الله ﷻ هغه ته ورکړودچادعوی چه دټولونه غټه وه هغه دعوه کړې وه چه د اوچتې مرتبې والارب زه یم.چاچه ونیلی ووچه ماته پته نشته چه ستاسوبل ځوك معبودزمانه علاوه هم شته.حضرت ابن عباس؄ فرمانی چه ددې نه پس هم چه ځوك هم دالله بندیان دتوبې نه مایوسه کوی هغه دالله ﷻ دکتاب نه انکاردی.خوداهم اوپیژنئ چه ترڅوالله ﷻ په یوکس باندې خپله مهربانی اونه کړی هغه ته توبه نه نصیب کیږی.

**دقران ځوجامع ایتونه:** طبرانی کښې دحضرت ابن مسعود؄ قول دې چه په کتاب الله قران کریم کښې دټولونه عظمت والاایت ایت الکرسی ده اودخیراوشردټولونه جامع آیت ﴿اِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ﴾دې اوپه ټول قران کښې دټولونه زیات خوشحالې والاایت دسوره زمر﴿قُلْ يٰعِبَادِیَ﴾دې.او ټولونه زیات ویرونکې ایت دادې.﴿وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ۙ وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾یعنی دالله ﷻ نه ویریدونکو خلاصی پخپله باندې الله ﷻ کوی اوهغوی ته دداسې ځائې نه رزق ورکړی چه دهغوی په خیال کښې هم نه وی.مسروق؇ ددې اوریدلوسره اوفرمائیل چه بې شکه تاسورښتونې ئې.حضرت عبدالله بن مسعود؄ چرته تلوچه قصه خوان ئې اولیدلوچه هغه چاته نصیحت کولو.هغه ورته اوفرمائیل چه ته ولې خلق مایوسه کوې؟بیائې ددې ایت تلاوت اوفرمائیلو.

**قوله تعالی:: لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ**

**دخفګان اوناامیدئ نه منع:-** دهغه حدیثونوپه کوموکښې چه دخفګان اوناامیدې منع شوې ده بیان دې. رسول اللهﷺ فرمائی چه په هغه مې دې قسم وی دچاپه قبضه کښې چه زماساده که تاسوخطاګانې کوې اوپه دې باندې زمکه اواسمان ډك کړې اوبیاالله ﷻ ته توبه اوکړې نوهغه به تاسواوبخی.په هغه ذات مې قسم دچاپه قبضه کښې چه دمحمدﷺ ساده که تاسوخطاګانې بالکل نه کوې نوالله ﷻ به تاسوختم کړی اوهغه خلق به راولی چه کوم به خطاګانې کوی اواستغفاربه کوی اوبیابه الله ﷻ هغوی اوبخی. (مسندامام احمد)حضرت ایوب انصاری؄ دخپل انتقال په وخت کښې فرمائی،یوحدیث تاسوته مادنن پورې نه دې بیان کړې نن ئې درته بیانوم مادرسول اللهﷺ نه اوریدلی دی که تاسوګناه نه کوله نوالله ﷻ به داسې یوقوم پیداکړې وچه هغوی به ګناه کوله اوبیابه الله ﷻ هغوی بخل.(صحیح مسلم وغیره)
حضورﷺ فرمائی دګناه کفاره شرم اوخفګان ده.حضرت عبیدالله بن عمیر؇ فرمائی چه ابلیس ملعون اوونیل چه ائې الله تازه دادم؈ په وجه باندې دجنت نه اوویستلم اوزه په هغه باندې ددې نه بغیرچه نه پرې ماته غلبه راکړې زه غالب نشم راتلې.الله ﷻ ورته اوفرمائیل چه ته په هغوی باندې مسلط نې. ابلیس اوونیل چه یاالله ماته څه نورهم راکړه.الله ﷻ ورته اوفرمائیل چه په بنی ادم کښې ځومره اولاد پیداکیږی دهغه هومره به دستاهم پیداکیږی.هغه بیادرخواست اوکړوچه یاالله څه نورزیات هم راکړه. الله ﷻ ورته اوفرمائیل دبنی ادم په زړه کښې مې دستادپاره کورجوړکړو.ته به دهغوی په بدن کښې د وینې په ځائې ګرځې هغه بیااوونیل یاالله څه نورهم،څه ته په هغوی باندې خپل سواره اوپیدل اولږوه.

اودهغوی په مال اواولاد کښې خپل کاراوکړه هغوی ته امیدونه ورکړه،اوپه حقیقت کښې ستاوعدې او امیدونه بالکل دروغ دی.هغه وخت ادم ﷺ دعااوکړه اې زماپروردګاره دې دې په ماباندې مسلط کړاوزه دستانه بغیرده نه نشم بچ کیدې.الله ﷻ اوفرمائیل واوره دستاچه به څومره اولاد کیږی دهغه سره به یومحافظ مقررکړم چه هغه به دشیطان دپنجې نه محفوظ وی.حضرت ادم ﷺ اوفرمائیل نور زیات،الله ﷻ اوفرمائیل یوه نیکی به په لس چنده ورکوم.اویوه ګناه به نې هم یوه حسابیږی یابه نې معاف کړم.ادم ﷺ بیاهم خپله دعاجاری اوساتله،الله رب العزت اوفرمالیل چه د توبې دروازه به د ستا دپاره هغه وخت پورې کهلاؤوی ترڅوچه دې بدن کښې روح وی.حضرت ادم ﷺ دعا اوکړه یاالله ماته نورهم څه راکړه.الله ﷻ ورته دا ایت اولوستلوچه زماګناه ګاروته اووایه چه زمادرحمت نه دې نه مایوسه کیږی.(ابن ابی حاتم)

دحضرت عمرفاروق ﷺ په حدیث کښې دی چه کوم خلق دکمزورې په وجه باندې دکافرانو تکلیفونه نه برداشت کولوپه وجه دخپل دین په فتنه کښې پریوتلومونږ دهغه باره کښې خپلوکښې وایو چه الله ﷻ د هغه څه نیکی اوتوبه نه قبلوی.دې خلقوالله ﷻ اوپیژندلواوبیاني کفراو کړو او د کافرانو سختی نې برداشت نه کړه.کله چه حضور ﷺ مدینې ته راغې نوالله ﷻ ددغه خلقوباره کښې ددې قول تردید اوکړو (قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا) نه ترد (لَا تَشْعُرُوْنَ۝) پورې ایتونه نې نازل کړل.

عمر فاروق ﷺ فرمائی ما پخپل لاس باندې دا ایتونه اولیکل اوهشام بن عمرو ﷺ ته لاړم. هشام بن عمرو ﷺ فرمائی چه هغه وخت په ذی طوی کښې ووم.مادابارباراولوستل اوښه غور اوفکرمې اوکړو. خو اصلی مطلب پورې مې ذهن اونه رسیدواخرمې دعااوکړه چه یاالله ددې ایتونو مطلب اوددې زما طرف ته راالیږلوصحیح مقصدپه ما باندې واضح کړه.نودالله ﷻ دطرف نه زماپه زړه کښې واچولې شو چه ددې ایتونونه مرادهم مونږ یو دا زمونږ باره کښې دی اوزمونږچه داخیال دې چه اوس زمونږتوبه نشی قبلیدې هم دې باره کښې نازل شوی دی.هم هغه وخت زه واپس شوم اوخپل اوښ باندې سورشوم اونیغ لاړم درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشوم.(سیرت ابن اسحاق)

**قوله تعالی::وَاَنِيْبُوْٓا اِلٰى رَبِّكُمْ**

**د مایوسئ ختمولو نه پس ترغیب::** دبندګانومایوسی ختمول اوهغوی ته دبخښې طمع ورکولونه پس حکم اوکړو اورغبت نې ورکړوچه هغوی توبې اونیک عملونوطرف ته راشی اومخکښې شی داسې نه وی چه د الله ﷻ عذاب راشی چه هغه وخت به دهغوی دمدد څوک نه وی.اودهغوی ته پکاردی چه دعظمت والا قران کریم تابعداری اوکړی اوددې په ماتحتې کښې مشغول شی ددې نه مخکښې چه یوناساپه عذاب راشی.اودوی په بې خبرئ کښې وی.هغه وخت به دقیامت په ورځ بې توبې مړه شوی اودالله ﷻ په عبادت کښې کمی کولووالابه ډیرافسوس کوی اوخواهش به کوی چه کاش مونږدخلوص سره دالله ﷻ حکمونه منلې وې.افسوس اچه مونږته یقین نه وو.دالله ﷻ د خبرو تصدیق مواونه کړوبلکه هغه به مو هسې ګپ شپ ګڼړلو.اووائی به که مونږهم هدایت موندلې وو نو یقینا په دنیاکښې دالله ﷻ د نافرمانو اوپه اخرت کښې به دهغه دعذاب نه بچ شوی وو.اوعذاب لیدلو سره به وائی که اوس بیادنیاته تلل ملاؤشی نودزړه داخلاص سره به نیکیانې کوو.

**قوله تعالی::اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ**

حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه بندیان څه عمل اوکړی اوهغوی څه وائی؟دهغوی دعمل اوقول نه مخکښې الله ﷻ هغوی ته خبرورکړې دې اودهغه نه زیات خبروالا څوک کیدیشی؟اونه دهغه نه زیات رښتیاخبرڅوک ورکولې شی.دبدکارانودادرې خبرې بیان شوې اوبل ځاې کښې داخبرورکړې دې که دوی واپس دنیاته اولیږلی شی نوبیابه هم هدایت اختیارنه کړی بلکه دکوم کارونونه چه منع کړی شی

هغه به کوی اودلته چه څه وائی ټول به دروغ شی.مسند احمدپه حدیث کښی دی چه هردوزخی ته به د هغه جنت اوخودلې شی هغه وخت کښی به هغه وائی کاش چه الله ﷻ ماته هدایت راکړې وې.داځکه چه هغه ته حسرت اوافسوس به وی اوهم دغه شان به هرجنتی ته په دوزخ کښی دهغه ځائی اوخودلې شی.هغه وخت به هغه وائی که الله ﷻ ماته هدایت نه وې کړې نوزه جنت ته نه شوم راتلې ځکه چه هغه په شکراواحسان منلوکښی نورهم مخکښی شی.چه کله به ګناه ګارخلق دنیاته دواپس راتلوخواهش کوی اود الله ﷻ دایتونونه منلوحسرت به کوی اودالله ﷻ درسولانونه منلوباندې به خفګان کوی نوالله ﷻ سبحانه ﷻ به فرمائی چه اوس خفګان اوشرمیدل بې کاره دی په دنیاکښی مې درته خپل ایتونه رالیږلی دی.خپل دلیلونه مې درته قایم کړی ووخوتاسوبه هغه دروغ ګڼړل اودهغوی دتابعدارۍ نه به موکبرکولواودهغې نه منکروې.کفرمواختیارکړواوس څه هم نشی کیدې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ | تَرَى | الَّذِيْنَ | كَذَبُوْا | عَلَى اللّٰهِ | وُجُوْهُهُمْ |
| اوپه ورځ دقیامت به | ته اووینې | هغه کسان | چې دروغ ئې تړلي دي | په الله پورې | مخونه دهغوئ به |

اودقیامت په ورځ به ته دهغه کسانو مخونه تک تور اووینې | چې په الله ﷻ ئې دروغ تړل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مُّسْوَدَّةٌ ؕ | اَلَيْسَ | فِيْ جَهَنَّمَ | مَثْوًى | لِّلْمُتَكَبِّرِيْنَ ۝ | وَيُنَجِّي اللّٰهُ |
| تور وی | آیا نشته | په دوزخ کښی | ځائي | دپاره دتکبر کونکو خلقو | او خلاصي به ورکړي الله |

آیا د متکبرو خلقو ځائي په دوزخ کښې نه دې | ............................ او (چا چې د کفر او دګناه نه)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْنَ | اتَّقَوْا | بِمَفَازَتِهِمْ | لَا يَمَسُّهُمُ | السُّوْٓءُ |
| هغه کسانوله | چې پرهیزګاران وی | په سبب دکامیابئ دهغوئ | نۀ به رسي هغوئ ته | تکلیف (سختی |

خان بچ اوساتلو | الله ﷻ به هغوئ ته په کامیابئ سره (ددوزخ) نه نجات ورکړي | (هلته) به هغوئ ته

| |
|---|
| وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ |
| او نۀ به هغوئ غمژن کيږي |

هیڅ تکلیف نه رسی | اونه به غمژن شی

**قوله تعالی:: وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ**

**کبرکونکی په دوزخ کښې او ددوئ بد حالت ::**دقیامت په ورځ به دوه قسمه خلق وی.دتورمخ والااونورانی مخ والا.دفرقت اواختلافاتو والا مخونه خوبه توروی اوداهل سنت والجماعت شکلونه به ښائسته نورانی وی دالله ﷻسره شریك جوړولوو الااودهغه دپاره اولاد پیدا کولوو الاخوبه وینی چه دهغوی د دروغواوالزامونوبه وجه باندې دهغوی مخونه توروی اوحق نه قبلولواوکبراوځان خودنې په وجه باندې به هغوی دوزخ ته اوغورځولې شی.چه هلته به ډیرذلت سره هغوی ته سختې سزاګانې ورکولې شی.

دابن ابی حاتم مرفوع حدیث کښی دی چه دکبرکولووالاحشربه قیامت کښی دمیږوبه شان وی د وړوکی نه وړوکې مخلوق به هم هغوی باندې خپې ایږدی تردې چه ددوزخ په جیل خانه کښی به قید کړې شی چه دهغې نوم بولس دې چه دهغې اوږدیرتیزاومصیبت والادې ددوزخیانووینې اوپیپ به په هغوی باندې اوڅکلې شی.اودالله نه ویریدونکی خلق به خپلې کامیابې اوفرمانبردارۍ په وجه ددې عذابونو نه اودې ذلت اووهلونه بالکل بچ وی هیڅ بدی به دهغوی خواه ته نشی ورتلې.ویره اوغم به د قیامت په ورځ عام وی هغه به ددوی نه لرې وی.دهرغم نه بې غمه اوهریوې ویرې نه بې ویرې اوهرې

سزانه خلاص اودهردردنه به لرې وی.هغوی ته به څوك وینانه کوی په امن اوراحت اوسکون سره به ورته د الله ﷻ ټول نعمتونه حاصل وی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ خَالِقُ | كُلِّ شَيْءٍ | وَّهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | | |
| الله پیدا کونکې دی | دهر څیز | او هغه په هر څیز باندې | | |
| ...................هم الله ﷻ دهر څیز پیداکونکې دې | | | | |
| وَّكِيْلٌ ۞ | لَهٗ | مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ۗ وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا |
| نظرساتونکې دې | هغه لره دی | کنجیانې دآسمانونو | او دزمکې | اوهغه کسان اچې کفر ئې او کړو |
| اوهم هغه په هرڅیزباندې نګران دې | داسمانونو او زمکې کنجیانې هم دهغه په اختیار کښې دی | | | |
| بِاٰيٰتِ اللّٰهِ | اُولٰٓئِكَ | هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۞ | قُلْ | اَفَغَيْرَ اللّٰهِ |
| دآیتونو دالله سره | دغه کسان چې دی | هم دوئ په نقصان کښې دی | ورته اووایه | آیا نو بې دالله نه |
| اوڅوک چې دالله ﷻ دآیتونونه انکار کوی | هم هغوئ په تاوان کښې دی | (ائې پیغمبره) ته ورته اووایه | | |
| تَاْمُرُوْٓنِّيْٓ | اَعْبُدُ | اَيُّهَا الْجٰهِلُوْنَ ۞ | وَلَقَدْ اُوْحِيَ | |
| تاسو حکم کوئ ماته | چې بندګی اوکړم دبل چا | اے نا پوهانو | او بې شکه وحی کړې شوی ده | |
| ائې جاهلانو آیا تاسو بیاهم ماته د نورچا دعبادت فرمائشونه کوئ ؟ | او بیشکه چې تاته | | | |
| اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِكَ ۚ | لَئِنْ اَشْرَكْتَ | لَيَحْبَطَنَّ | |
| تاته | او هغه کسانو ته | چې مخکښې ستا نه وو | که چرې شرك اوکړو تا | نو خامخا به ضائع شی |
| ستا نه وړاندې نور پیغمبرانو ته هم وحی لیږلې شوې وه | (ائې بنیادمه) که تاشرك اوکړو نوټول عملونه به دې | | | |
| عَمَلُكَ | وَلَتَكُوْنَنَّ | مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۞ | بَلِ اللّٰهَ | فَاعْبُدْ |
| عمل ستا | او خامخا به شې ته | دتاوانیانو نه | بلکه دالله | پس بندګی کوه ته |
| برباد شی | او په تاوان کښې به اوغورزیږې | ..................ته خو بس صرف د یو الله ﷻ عبادت کوه | | |
| وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ۞ | | | | |
| او شه دشکرایستونکو نه | | | | |
| اودهغه شکرګزارو کښې شامل شه | | | | |

قوله تعالی:: اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ
دهرقدرت مالک الله ﷻ:-دټولوژوندواومړوڅیزونومالك خالق اواختیارمندصرف الله ﷻ دې. هر یو څیز دهغه ماتحت اودهغه په قبضه کښې دې.دهرچاکارساز اووکیل دې دټولوکارونوپوره کول دهغه په لاس کښې دی.دزمکې اسمان دخزانوچابیانوهغه یواځې مالك دې.دحمداوثناء لائق اوپه هریوڅیزباندې هغه قدرت لرونکې دې.کفراوانکارکولوولاپه سخت تاوان کښې دی.امام ابن ابی حاتم دلته یوحدیث بیان کړې دې،اګرچه دسندپه لحاظ باندې غریب دې بلکه په صحت کښې هم کلام شته خوهغه دلته ذکر کوو.په دې کښې دی چه حضرت عثمان رضی الله عنه رسول الله ﷺ نه ددې ایت دمطلب تپوس اوکړونورسول الله ﷺ اوفرمائیل اې عثمان دستانه مخکښې زمانه ددې ایت دمطلب تپوس چانه ووکړې.

دذي ايت تفسير دا دي. لااله الاالله والله اكبر سبحان الله وبحمده واستغفرالله ولاقوة الابالله الاول والاخر والظاهر والباطن بيده الخير يحيي ويميت وهوعلى كل شيئ قدير اې عثمان كوم كس چه دسحر دا لس خله اولولئ نوالله ﷻ هغه ته شپږ فضيلتونه وركړي.اول خوهغه دشيطان اودهغه دلشكرنه بچ شي.دويم هغه ته يوقنطاراجرملاؤشي.دريم په جنت كښې دهغه يوه درجه اوچته شي.څلورم دهغه حورعين سره نكاح اوشي.پنځم هغه ته دولس فرښتې راشي.شپږم هغه ته دومره ثواب ملاؤشي لكه چه څوك قران تورات انجيل اوزبور اولولئ.بيا د دې سره هغه ته ديوقبول شوې حج اويوقبولې شوې عمرې ثواب هم ملاوېږي اوكه په هغه ورځ دې مړ شي نودشهادت درجه ورته ملاوېږي.داحديث ډيرزيات غريب دې اوپه دې كښې ډيرې لوې خبرې دي.

**قوله تعالى:: قُلْ أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَأْمُرُونِّي أَعْبُدُ أَيُّهَا الْجَاهِلُونَ۝**

**د مشركانو د رسول كريم ﷺ نه مطالبه او نبي كريم ﷺ جواب::** ابن عباس﷛ فرمائي مشركانو حضورﷺ ته اووئيل چه راځه ته زمونږ معبودانوته عبادت كوه او مونږ به ستارب ته سجدې كوو.په دې باندې آيت ﴿قُلْ أَفَغَيْرَ اللَّهِ﴾ نه ترد﴿مِنَ الْخَاسِرِينَ۝﴾ پورې نازل شو هم دامضمون په دې ايت كښې هم دې.﴿وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ۝﴾مخكښې دنبيانو عليهم السلام ذكردې بيافرمائيلي دي.كه بالفرض دا نبيان هم شرك اوكړي نوددوی ټول عملونه به ضائع شي دلته نې هم فرمائيلي دي چه ستاطرف ته اوستانه مخكښې ټولونبيانوته مونږوحي ليږلې وه چه څوك شرك كوی نودهغه عملونه غرق شول اوهغه دنقصان والا او رياكارشو.نوتاته پكاردي چه ته دخلوص سره دالله ﷻ واحدلاشريك رب عبادت كوه اودهغه شكر ادا كوه.ته هم اودستامنولوو الامسلمانان هم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ | حَقَّ قَدْرِهِ | | | |
| اواونه كړو قدر(تعظيم)دوئ دالله لكه څنګه چې حق دې دقدركولو دهغه | | | | |
| اخو دې خلقو د الله ﷻ هغسې قدر اونه كړلو څنګه چې پكار وو | | | | |
| وَالْأَرْضُ | جَمِيعًا | قَبْضَتُهُ | يَوْمَ الْقِيَامَةِ | وَالسَّمَاوَاتُ |
| او زمكه | ټوله | به په موټى دهغه كښې وى | په ورځ دقيامت | آسمانونه به |
| ددې باوجود چې دقيامت په ورځ به ټوله زمكه دهغه په موټى كښې وى اوټول آسمانونه به | | | | |
| مَطْوِيَّاتٌ | بِيَمِينِهِ ط | سُبْحَانَهُ | وَتَعَالَى | عَمَّا |
| نغښتلې شوى وى | په ښى لاس دهغه كښې | پاكى ده هغه لره | اواوچت دې | دهغې نه |
| دهغه په ښى لاس كښې رانغښتى وى | ............ | هغه دپاره پاكى ده | اوددوئ جوړ كړى | |
| يُشْرِكُونَ۝ | | | | |
| چې دوئ نې ورسره شريكوى | | | | |
| شرک نه ډير اوچت دې | | | | |

**قوله تعالى:: وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ**

**مشركانودالله ﷻ مقام نه پيژندلې::**-مشركانوته په اصل كښې دالله ﷻ مقام اوعظمت معلوم نه دې په دغه وجه به هغوى دالله ﷻ سره نورخلق شريك كوى دهغه نه زيات عزت اوزيات بادشاهت والااودهغه نه زيات غلبې اوقدرت والابل څوك نشته.نه دهغه څوك برابرشته.داايت دقريش دكافرانوباره كښې نازل شوې دې كه هغوى سره قدروې نوهغوى به دهغه هريوه خبره غلط نه ګڼړله كوم كس چه الله ﷻ په

هرڅیزباندې قدرت لرونکې اومنی چاچه دالله عظمت اوکړواودچاچه داعقیده نه وی نوهغه دالله ﷻ قدرنه کوی.ددې ایت باره کښې ډیرحدیثونه دی.ددې قسمه ایتونوباره کښې دبزرګانومسلك دادې چه څنګه اوپه کوموالفاظوکښې داایت راغلې دې هم هغه الفاظوکښې دامنل اوپه دې باندې ایمان راوړل ،نه چه ددې وجه معلومول اوپه دې کښې تبدیلې کول.صحیح بخاری کښې ددې ایت په تفسیرکښې دی چه دیهودیانویوډیرلوی عالم حضورﷺ ته حاضرشواووئې ونیل چه مونږته لیکلی راغلی دی چه الله ﷻ به ټول اسمانونه په یوه ګوته باندې کیدی اوټولې زمکې به په یوه ګوته باندې کیدی اوټولې ونې به یوه ګوته باندې کیدی اوبه او خاوره په یوه ګوته باندې اونورټول مخلوق به یوه ګوته باندې کیدی. بیا به اوفرمائی چه زه دټول مخلوق مالك یم اوربښتونې بادشاه یم.حضورﷺ ددې خبرې په ربښتیاوالی باندې په خنداشوتردې چه دحضورﷺ اورږ ښکاره شوې.بیاحضورﷺ ددې ایت تلاوت اوفرمائیل. د مسندپه حدیث کښې هم دغه شان دی.په هغې کښې دی چه رسول اللهﷺ په خنداشواوالله ﷻ په داایت نازل کړو.اوروایت کښې دی چه هغه په خپلوګوتوباندې ونیل اول هغه دکلمې ګوته اوخودنه .په دې روایت کښې دڅلوروګوتوذکردې. -

صحیح بخاری کښې دی چه الله ﷻ به زمکه په قبضه کښې کړی اواسمان به پخپل ښی لاس کښې واړی اوبیابه فرمائی زه بادشاه یم،کوم ځائې دی دزمکې بادشاهان؟دمسلم په حدیث کښې دی چه زمکې به دالله ﷻ په ګوته وی اواسمان به ئې په ښی لاس کښې،بیابه فرمائی زه بادشاه یم.

یوروایت کښې دی چه ابن عمرﷺ ددې پوره حالت خودلې دې چه څنګه حضورﷺ هغه ته حکایت کړې وو،چه الله ﷻ به زمکې اواسمانونه په لاس کښې واخلی اوابه فرمائی چه زه بادشاه یم خپلې ګوتې به نی کله کولاووی،کله به ئې بندوی اوحضورﷺ هغه وخت حرکت کولوتردې چه دحضورﷺ حرکت سره ټول منبراوخوزیدواوزه ویریدم چه حضورﷺ دهغې نه اونه غورځیږی.دبزاریه روایت کښې دی چه حضورﷺ داایت اولوستلواومنبرپه خوزیدوشواوحضورﷺ درې ځله لاړوراغلو.والله اعلم.دمعجم کبیر طبرانی یوغریب حدیث دې چه حضورﷺ دصحابیانویوجمات ته اوفرمائیل نن تاسوته دسوره زمراخری ایتونه واوروم چه په هغې باندې چاته ژړاراشی.هغه جنتی شو.اوس حضورﷺ ددې ایت نه دسورت اخره پورې تلاوت اوفرمائیلوبعض په ژړاشوئ اوبعضوته ژړاورنغله هغوی اوونیل یارسول اللهﷺ مونږ ډیر کوشش اوکړوچه اوژاړوخومونږته ژړانغله حضورﷺ اوفرمائیل څئ زه به لولم چاته چه ژړانه ورځی هغوی دې د ژړاشکل جوړ کړی اوپه زوردې اوژاړی.یوددې نه زیات غریب حدیث کښې دی چه الله ﷻ فرمائی مادرې څیزونه دخپل بندګانونه پټ کړی دی که دوی هغه لیدلې وې نوڅوک بدی به ئې هم نه وه کړې.(۱)که ماپرده لرې کړې وې اودوی زه لیدلې وې نودایقین به ئې کړې ووچه زه خپل مخلوق سره څه کوم چه کله دهغوی خواه تد راشم اواسمانونه په خپل لاس کښې واخلم اوزمکې پخپل متی کښې بندکړم بیااووایم چه زه بادشاه یم زمانه علاوه څوك مالك شته؟(۲)بیازه هغوی ته جنت اوښایم اوپه هغې کښې چه څه څیزونه دی هغه ددوی مخې ته کړم اوهغوی دیقین سره داوینی.(۳)زه دوی ته دوزخ اوښایم اودهغې عذابونه ورته اوښایم تردې چه هغوی ته یقین اوشی.خوماداڅیزونه په قصدباندې پټ ساتلی دی چه ماته پته اولږی چه.هغوی ماڅنګه پیژنی څکه چه ماداټولې خبرې بیان کړی دی.ددې سندمتقارب دې اوددې نسخې نه ډیرحدیثونه روایت کیږی.والله اعلم.

| | | |
|---|---|---|
| فَصَعِقَ | فِي الصُّوْرِ | وَنُفِخَ |
| اوبیوکې به اوکړې شی اپه صور(شپیلی) کښې اپس دبې هوشئ سره به مړه راپریوزی | | |
| او شپیلئ به پوک وهلې شی ا.........نو د اسمان او زمکې | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ | وَمَنْ | فِي الْأَرْضِ | إِلَّا | مَنْ |
| هغه څوك | چې په اسمانونو كښې دي | او هغه څوك | چې په زمكه كښې دي | ماسوا | دهغه چانه |

په مينځ كښې چې څومره مخلوق دي ټول بهٔ بې هوشه شي| خو څوك چې الله ﷻ (بچ ساتل) اوغواړي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شَاءَ اللّٰهُ | ثُمَّ نُفِخَ | فِيهِ | أُخْرٰى | فَإِذَا هُمْ | قِيَامٌ |
| چې اوغواړي الله | بيا به پوكې اوكړې شي | په هغې كښې | بل خل | پس يودم به هغوئ | ولاړ وي |

بيا به په دويم خل شپيلئ پوك وهلې شي|......... نو ټول به راپاڅي| ............او كتل به كوي|

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَنْظُرُونَ ۞ | وَأَشْرَقَتِ | الْأَرْضُ | بِنُورِ رَبِّهَا | وَوُضِعَ الْكِتٰبُ |
| اوګوري به | اوروښانه به شي | زمكه | په نور درب خپل سره | او كيښودې به شي كتاب |

..............|اوزمكه به دخپل رب په نور باندې روښانه شي|او عملنامه بهٔ (مخامخ) كيخودلې شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَجِايْءَ | بِالنَّبِيِّينَ | وَالشُّهَدَآءِ | وَقُضِيَ | بَيْنَهُمْ |
| او رابه ويستې شي | پيغمبران | او ګواهان | او فيصله به اوكړې شي | په منځ دهغوئ كښې |

اوپيغمبران او (نور) ګواهان به حاضر كړې شي| اودخلقو په مينځ كښې به په انصاف سره فيصله

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِالْحَقِّ | وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۞ | وَوُفِّيَتْ | كُلُّ نَفْسٍ | مَّا |
| په حقه سره | او دهغوئ سره په ظلم نهٔ كيږي | او پوره به وركړې شي | هر نفس ته | هغه |

اوكړې شي| اود ذرې بر ظلم به پرې اونكړې شي| اوهر يو كس ته به د خپلو عملونو پوره پوره

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَمِلَتْ | وَهُوَ أَعْلَمُ | بِمَا | يَفْعَلُونَ ۞ |
| چې كړې وي هغه | او هغه ښه پوهيږي | په هغه څه | چې كوي ئې دا خلق |

بدله ملاو شي| اودوي چې څه كوي الله ﷻ ته ټول په ښه شان معلوم دي|

**قوله تعالى:: وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ**

**دقيامت سختئ:**-دقيامت دسختواودهغې ددهشت اووړې ذكركيږي چه شپيلې به اووهلې شي.دابه دويم شپيلې وي چه په هغې به ټول راژوندي شي كه هغه په زمكوكښې دي اوكه په اسمانونو كښې.خو چه څوك الله ﷻ غواړي.دشپيلې مشهورحديث دې چه بيابه دنورو روحونه واخستلې شي ترديې چه د ټولو نه اخره كښې پخپله دملك الموت روح هم واخستلې شي.اوصرف الله ﷻ به باقي پاتې شي چه هغه حي وقيوم دې اودا اول نه وواو داخره پورې به پاتې شي.بيابه اوفرمائي چه نن دچابادشاهت دې؟درې خله به هم داأوفرمائي.بيابه پخپله وركړي چه دواحدقهارالله.زه يواځې يم چه ماهر يو څيز پخپله ماتحتې كښې ساتلې دې.نن ماټول ختم كړل.

**دټولو نه اول به اسرفيل ﷺ ژوندې كيږي::** بيابه الله ﷻ خپل مخلوق دبياژوندى كيدلو حكم اوكړو. د ټولونه مخكښې به اسرافيل ﷺ ژوندې كړې شي اوهغه ته به حكم اوكړې چه شپيلې اووه.دابه دريم شپيلې وي چه په هغې باندې په ټول مخلوق كوم چه مړهه ووژوندى شي چه دهغې بيان په دې ايت كښې دې چه شپيلې به اووهلې شي نوټول خلق به راپاسي اونظرونه به كوي يعنې دقيامت زړه خوزونكې حالت ته به ګوري.څنګه چه فرمائيلې دي (فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَإِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ) يعنې هغه

خوبه يوسخت اوازوی چه دهغې په وجه باندې به ټول خلق زرميدان ته راشي.اوپه ايت کښې دی.﴿يَوۡمَ يَدۡعُوكُمۡ فَتَسۡتَجِيبُونَ بِحَمۡدِهِۦ﴾ يعنی په کومه ورځ چه به الله ﷻ تاسو راوغواړی.نوتاسوټول به دهغه حمداوثناء سره دهغه اوازاومنئ اوددنياژوندبه کم اوګڼړی.دالله ﷻ په يوبل ځائې کښې ارشاد دی.﴿ وَمِنۡ ءَايَٰتِهِۦٓ أَن تَقُومَ ٱلسَّمَآءُ وَٱلۡأَرۡضُ﴾ دهغه په نښوکښې د زمکې اواسمان دهغه په حکم باندې قائم اوسيدل دی،اوبيابه چه کله هغه تاسوته دزمکې نه اواز اوکړی نوتاسوټول به يوځل باندې راوځې.مسنداحمدکښې دی چه يو کس حضرت عبدالله بن عمروته اووئيل چه تاسوفرمايئ چه دومره دومره وخت پورې به قيامت راځي. هغه ترې خفه شواوئې وئيل چه زړه مې غواړی چه تاسره هيڅ خبرې هم نه کوم.ماخوونيلی ووچه په لږ وخت کښې به تاسوحکم وينئ. بيا ئې اوفرمائيل چه مادرسول اللهﷺ نه اوريدلی دی چه زماپه امت کښې به دجال راځي اوهغه به څلوينښتوپورې وی.ماته پته نشته چه څلوينښت ورځې که څلوينښت مياشتې که څلوينښت کاله اوکه څلوينښت شپې،بيابه الله ﷻ عيسی ابن مريم عليهماالسلام راوليږی. هغه به په شکل اوصورت کښې بالکل دعروه بن مسعودثقفیؓ په شان وی.الله ﷻ به هغه غالب کړی اودجال به دحضرت عيسیؑ په لاس باندې قتل کړې شی بيابه اووه کاله خلق دهغه سره ملاوُوی او په ټوله دنياکښې به ديوبل سره څه خفګان نه وی.بيابه الله ﷻ دشام دطرف نه يوه يخه هواراوالوځوی چه په هغې باندې به دټولوايماندارونه روح واخستلې شی تردې چه دچاپه زړه کښې دوری هومره ايمان هم وی هغه به هم وفات شی.دوی که هرځائې کښې وی تردې که دغره په لمن کښې هم څوك مسلمان وی نوداهوابه هلته هم اورسی.مادادرسول اللهﷺ نه اوريدلی دی بيابه بدترين خلق پاتی شی،چه هغوی به په ځپل رذالت کښې دمرغوپه شان سپك اوپه بې وقوفې کښې دځناورپه شان بې وقوف وی.نه به ښه والې ښه ګڼړی اونه به خرابې خراب ګڼړی.هغوی ته به شيطان ښکاره شی اووائی به چه شرميږئ نه چه تاسوېتانوته سجدې پريخودې،نوهغوی به دهغه په دهوکه کښې راشي اوبتانوته به سجدې شروع کړی په دې حالت کښې به الله ﷻ دهغوی په رزق کښې زياتوالې راولی.بيابه شپيلئی اووهلې شی چه د چا غوږونوته دااوازرسی هغه به هم هلته اودريږی اوبيابه اوغورځيږی.دټولونه مخکښې چه به دااوازدکوم کس غوږونوته رسی هغه به ځپل حوض جوړوی هغه ساعت به بې هوشه شی اوپه زمکه به رااوغورځيږی اوخان به ترې هيرشی.بيابه الله ﷻ باران شروع کړی چه هغه به دپرخې په شان وی،دهغې په وجه باندې دخلقويدنونه راوخيژی.بيابه دويم شپيلئی اووهلې شی بيابه ژوندی کړې شی اوکتل به کوی.بيابه اووئيلی شی چه ائې خلقوادځپل رب طرف ته راشئ،دوی اودروئ دوی نه به سوالونه کيږی.بيابه اوفرمائيلې شی چه دوزخ حصه ترې بهرکړئ.تپوس به اوشی څومره؟دزرونه نهه سوه اونهه نوی.داورځ به وی چه ماشومان به بوډاګان شی اوهم دغه ورځ به وی چه په کومه ورځ به پنډئی کولاويږی.(صحيح مسلم) صحيح بخاری کښې دی ددواړوشپيلومينځ کښې به څلوينښت وی دحديث روايت کونکی ابوهريرهؓ نه تپوس اوشوچه څلوينښت ورځې؟اوئې فرمائيل چه زه جواب نه شم درکولې.تپوس ترې اوشوچه څلوينښت کاله اوئې فرمائيل زه ددې جواب نه درکوم تپوس اوشوڅلوينښت مياشتې؟اوئې فرمائيل زه د دې جواب هم نه شم درکولې.دانسان هريوځائې به خراب شی خودملاهډوکې،ددې نه د انسان ترکيب کولې شی.

د ﴿إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ﴾ نه څوك مراد دی ؟:.ابويعلی کښې دی درسول اللهﷺ دجبرائيلؑ نه تپوس اوکړو چه پدې ايت کښې کومه استثناء ده يعنی چه څوك الله ﷻ غواړی دهغه خلقونه څوك مراددی؟اوې فرمائيل شهيدان دوی به ځپلې تورې نيولې وی اودالله ﷻ عرش نه به ګيرچاپيره وی.فرښتې به دوی په ځپل حصارکښې دوی دمحشرطرف ته بوځی.دياقوت په اوښانوبه سواره وی چه دهغې ګدې به دريښمونه هم زياتې نرمې وی.دانسان نظرچه دکوم ځائې پورې کارکوی،دهغې به يوقدم وی په جنت کښې به

دري خوشحاله وي،هلته به په ارام سره وي دهغوي په زړونوکښې به راځي چه راځئ چه اوګوروالله ﷻ دخپل مخلوق فيصلې کوي.نودهغوي طرف ته کتلوسره به اله العالمين په خنداشي،اوکوم ځائې کښې به چه الله ﷻ په خنداشي هلته به حساب کتاب نه وي.ددې ټول روايت کونکي اعتبار والادې. خود اسماعيل بن عياش استاذمشهورنه دې.والله اعلم.دقيامت په ورځ چه به کله الله ﷻ دخپل مخلوق فيصلودپاره راشي نوهغه وخت به دهغه دنورپه وجه باندې ټوله زمکه اوبرقيږي،عمل نامې به راوړلې شي،نبيان به پيش کړې شي چه هغوي ګواهي ورکړي چه هغوي خپلوامتونوته تبليغ کړې دې، او د بنديانودنيک اوبدعملونومحافظې فرښتې به راوستلې شي،اوپه عدل اوانصاف سره به د مخلوق فيصلې اوشي.اوپه چاباندې به هيڅ قسمه ظلم نه کيږي.څنګه چه فرمائيلي دي.﴿وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ﴾ يعنی د قيامت په ورځ به مونږ دانصاف تله قائم کړواوپه چاباندې به ظلم نه کوو، اګرکه ووری ددانې هومره عمل وي مونږبه هغه هم موجودکړواومونږدحساب اخستلو والا کافي يو.اوپه ايت کښې دي چه الله ﷻ ديوې ذرې هومره ظلم هم نه کوي هغه نيکيانې زياتوي اودخپل طرف نه لوې اجرورکوي.په دې وجه دلته هم ارشادشوې دې چه هريوکس ته به دهغه دخراب اوښه عمل پوره پوره بدله ورکړې شي.هغه ته هريوکس دعملونوپته ده.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَسِيْقَ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْٓا | اِلٰى جَهَنَّمَ | زُمَرًا | حَتّٰٓى | اِذَا | |
| اوراوبه شړلې شي هغه کسان | چې کفر ئې کړې وو | دوزخ ته | ډلې ډلې | اتر دې پورې | چې کله | |
| او کافران به ټول دوزخ طرفته اوشړلې شي ........څه وخت چې دوزخ ته ورنزدې شي | | | | | | |
| جَآءُوْهَا | فُتِحَتْ | اَبْوَابُهَا | وَقَالَ | لَهُمْ | | |
| راشي هغوئ دوزخ ته | نو بيرته به کړې شي | دروازې دهغې | اووائي به | هغوئ ته | | |
| نودهغې دروازې به ورته پرانستې شي | اود دوزخ محافظان به اووائي | چې | | | | |
| خَزَنَتُهَآ | اَلَمْ يَاْتِكُمْ | رُسُلٌ | مِّنْكُمْ | يَتْلُوْنَ | عَلَيْكُمْ | |
| کارندګان ددوزخ | ايا نه وو درغلي تاسو ته | رسولان | ستاسو نه | چې لوستل به ئې | په تاسو باندې | |
| ايا تاسو ته د خپل قوم نه پيغمبران نه وو راغلي | چې د خپل رب ايتونه ئې درته اوروليٰ وې | | | | | |
| اٰيٰتِ رَبِّكُمْ | وَيُنْذِرُوْنَكُمْ | لِقَآءَ | يَوْمِكُمْ هٰذَا | قَالُوْا | | |
| ايتونه درب ستاسو | اويرولئ به ئې تاسو | دملاقات | ددې ورځې ستاسو نه | اوبه وائي هغوئ | | |
| اوتاسو ئې ددې ورځې د راتلو نه ويرووليٰ وئ | ........ هغوئ به اووائي چې | | | | | |
| بَلٰى | وَلٰكِنْ | حَقَّتْ | كَلِمَةُ الْعَذَابِ | عَلَى الْكٰفِرِيْنَ | | |
| هو راغلي وو | وليکن | ثابته شوه | خبره د عذاب | په کافرانو باندې | | |
| ولې نه ، ..........خود عذاب وعده اخر په کافرانو باندې پوره شوه | | | | | | |
| قِيْلَ | ادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ | جَهَنَّمَ | خٰلِدِيْنَ | فِيْهَا | فَبِئْسَ | |
| اوبه ونيلې شي ورته | ننوزئ دروازو | د دوزخ ته | هميشه به يئ | په هغې کښې | پس ډير بد دې | |
| ورته به اوونيلې شي چې (ځئ اوس) ددوزخ په دروازو ورداخل شئ | هميشه به په کښې پراته يئ | | | | | |

| | |
|---|---|
| مَثْوَى | الْمُتَكَبِّرِيْنَ۝ |
| خائې داوسېدو | دتکبر کونکو |
| د متکبرو خلقو د استوګنې خائې ډېر خراب دې | |

**قوله‌تعالى:: وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا ط**

**دوزخيانو بدل حالت او ددوئ نه دجهنم د څوکيدارانوسوال.** دبدنصيبو کافرانو اوحق نه منکروخلقو دحالت بيان دې چه هغوى به دخناورو په شان رسوااووينا خورى اودوزخ طرف ته به اوليږلې شى.څنګه چه په بل ايت کښې دى.**يدعون** لفظ دې ديکې به ورکولې شى اوسخت تږى به وى،څنګه چه الله ﷻ فرمائيلى دى.﴿يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ﴾الخ، په کومه ورخ چه مونږپرهيزګاران دالله ﷻ ميلمانه راجمع کړواوګناهګاران به د دوزخ طرف ته تږې اوليږلې شى.ددې نه علاوه به ګونګيان،کاڼه اوړانده وى اومونږبه نې التبه دوزخ ته راکاږو.څنګه چه فرمائيلى دى.﴿وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ﴾دقيامت په ورځ به مونږدوى التبه دوزخ ته راکاږو دوى به ګونګيان اوکاڼه او ړانده وى. ددوى خائې دوزخ دې چه دهغې اورکله يخيږى نومونږبه دغه نورهم تيزکړو.دوى چه نزدى ورشى نودروازې به کهلاؤکړې شى.چه زرورته داورعذاب شروع شى.

بيابه هلته محافظې فرښتې دشرمولودپاره به ورته په غصه کښې وائى،خکه چه په هغوى کښې رحم کول نشته اوسختې کولووالااوهروخت غصه کښې وى اوډيرزيات وهل کولووالادى،چه تاسوته هم ستاسوپه شان دالله ﷻ رسولان نه ووراغلى؟چه دهغوى نه تاسوتپوسونه کړى وو.خپل اطمينان او تسلى موکړې وه دهغوى خبروباندې پوه شوې وئ.دهغوى په محفل کښې کيناستې شوئ.هغوى تاسوته دالله ﷻ ايتونه اولوستل،په خپل راوړلى رښتونى دين باندې تاسوته دليلونه درکړل.تاسوته نې ددې ورځې دخرابونه خبرکړې،اوددې عذابونونه نې ويرولى؛

**قوله‌تعالى:: قَالُوا بَلَىٰ**

**د کافرانو جواب او اقرار::** کافربه اقرارکوى چه اودارښتيادى بې شکه دالله ﷻ پيغمبران مونږته راغلى وو اودليلونه نې هم قائم کړى وواومونږته نې ډيرڅه ونيلى دى اوويرولې هم ووخومونږدهغوى يوخبره هم اونه منله اودهغوى مقابله موکوله،خکه چه زمونږبه قسمت کښې بدبختيا وه مونږ ازلى بدبخت يو.دحق نه مومخ واړولو اود باطل طرفدارشو څنګه چه دسوره تبارك په ايت کښې دى چه کله به دوزخ ته يوډله لاړه شى نوهلته به دهغوى نه محافظان تپوس کوى چه تاسوته څوك ويرولووالاته وو د راغلې؟ هغوى به جواب ورکوى چه راغلې خووخومونږهغه دروغ ګنړلواوورته مواوونيل چه الله ﷻ څه هم نه دى نازل کړې تد په غلطه نې.که مونږاوريدل ياپوهيدونونن به په دوزخ کښې نه وې.يعنى په خپله به خپل خان ملامته کوى دخپلې ګناه اقراربه پخپله کوى.الله ﷻ به اوفرمائى لرې والې اونقصان او لعنت دې وى په دوزخيانو باندې.اوبه ونيلى شى چه کوم کس هم دوى وينى اوددوى داحالت ورته معلوم شى نوهغوى به وائى چه بې شکه دوى هم ددې قابل وو.په دې وجه باندې دويونکى نوم ندې اخستلې اوهغه نې هم داسې پريخودلې دې چه عام باقى پاتى شى اودالله ﷻ دانصاف ګواهى ورکړى. هغوى ته به اوونيلې شى چه اوس تاسودوزخ ته لاړشئ اودلته دهميشه دپاره سوزئ ددې خائې نه به تاسوته خلاصې ملاؤنشى اونه به مړه شې.اوداڅومره خراب خائې دې چه پدې کښې به شپه ورخ سوزيدل وى.داده دستاسو د کبر او حق نه منلوبدله چه هغې تاسودې خائې ته راورسولې اوهم ددې خائې ئې کړې.څه خراب حالت دې اوڅه عبرتناك نتيجه ده. الله ﷻ دې مونږمحفوظ اوساتى.

وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا

او روان به کړې شي | هغه کسان | چي خان به ئې ساتلو دنافرمانئ

| اوځوک چي دخپل رب د نیولو نه اوویریدو

رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ۖ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا

درب خپل نه | جنت ته | ډلي ډلي | تر دې پورې | چي کله | راشي هغوئ دغه جنت ته |

هغوئ به ټولي ټولي جنت ته روان کړې شي | څه وخت چي هغې ته نزدې شي |

وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا

او بیرته کړې شوې به وی | دروازې دهغې | اواوبه وائي | هغوئ ته | انتظام کونکي فرښتي دهغې |

او دروازې به ورته پرانستلي شوې وی| اودهغې محافظان به ورته اووائي

سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ ۝

سلام دې | په تاسو باندي | ډیر ښه شوئ تاسو | پس ننوزئ دې ته | دهمیشه دپاره |

چي په تاسو دې سلام وی | تاسو ښه خلق يئ | نو دې جنت ته د همیشه اوسیدو دپاره ورداخل شئ

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ

اواوبه وائي هغوئ | ثنا ده | الله لره | هغه الله | چي رښتینی ئې کړه زمونږ سره | وعده خپله |

هغوئ به اووائي چي ډیر شکر دې | چي الله تعالی مونږ سره خپله وعده په رښتیاپوره کړه |او

وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ

او په میراث ئې راکړه مونږ ته | زمکه | چي ځائې جوړولي شو مونږه | دزمکي دجنت نه |

مونږ ئې ددې زمکې مالکان کړو | چي په جنت کښې کوم ځائې غواړو | نو هلته به

حَيْثُ نَشَاءُ ۖ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ۝

هر ځائې کښې | چي غواړو مونږه | پس ډیر ښه دې | اجر دعمل کونکو |

ډیرد شو | غرض دا چي د ښه عمل کونکو بدله هم ښه ده |

**قوله تعالی:: وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ۖ**

**دجنتيانوهر كلې اودجنت درجات:** مخکښی دبدبختنواودهغوی انجام بیان شوې دې اودلته د فرمانبردارو نتیجه بیانیږی چه په خانسته اوښانوباندې به سواره وی اودجنت طرفته به خی.ددوی به هم مسجدونه وی،دخاص مقربومسجد ،بیابه دابراراوبیادهغوی نه دکښې درجې والا،بیادهغوی نه دکمې درجې والا. هریوجمات به دخپل مناسب خلقوسره وی.نبیان به نبیانو علیهم السلام سره وی،صدیق به د خپل خان په شان سره، شهیدان به دخپل خان په شان سره عالمان به دعالمانوسره،غرض هریوکس د خپل خان په شان خلقوسره وی.دوی چه به کله جنت ته اورسی دپل صراط نه واوړی هلته به په یوپل باندې اودرولې شی اوپه خپلوکښی چه کوم ظلمونه شوی وی دهغې قصاص اوبدله به اوشی.چه کله به پاك اوصفاشی نوجنت ته به ورته دتلواجازت ملاؤشی.دصورپه مطول حدیث کښی دی چه دجنت دروازوته رسیدلوسره

به دوی خپلوکښي مشوره کوی چه ګوري دټولونه مخکښي چاته اجازت ورکولې شي.بیابه دوی د ادمﷺ قصداوکړی.بیابه دنوحﷺاوبیادابراهیمﷺ،بیابه دموسی ﷺبیادعیسیﷺاوبیاد محمدﷺ. څنګه چه دحشرپه میدان کښي شفاعت په موقع باندې کړې وه.ددې نه مقصد دمحمدﷺ فضیلت ځانې په ځانې بیانول دی.دصحیح مسلم په حدیث کښي دی چه زه ړومبې سفارشی یم په جنت کښي.او روایت کښي دی چه هغه ړومبې کس یم چه هغه به دجنت دوازه ټکوی.مسنداحمدکښي دی.چه د قیامت په ورځ باندې به زه دجنت دروازه کهلاوم نوهغه ځانې خوکیداربه مانه تپوس اوکړی چه ته څوک ئې؟ زه به ورته اووایم زه محمدیم،هغه به وائی چه ماته هم دغه حکم ووچه دستاسوپه راتلوباندې دټولونه مخکښي دجنت دروازه تاسوته کهلاؤکړم.

**دجنتیانودښائست یومنظر**:-مسنداحمدکښي دی چه دټولومخکښي کومه ډله به جنت ته ځی دهغوی مخونه به د څوارلسمي سپوږمۍ په شان وی.لاړې،قنړی،متیازې وغیره هلته به هیڅ هم نه وی.دهغوی لوښي او سامانونه به د سرو اوسپینو زرو وی.دهغوی په انګیټوکښي به ځانسته خوشبووی اودهغوی خوله به دمشکووی.دهغوی ټولوبه دوه دوه ښځې وی چه دهغوی دپنډې مازغه به دهغوی دښائست او نزاکت اوصفایۍ په وجه باندې دغوښي شاته هم ښکاری.په دواړوکښي به هیڅ څه اختلاف اوبغض یا حسدنه وی،دټولوزړونه به داسې وی لکه دیوکس.سحراوماښام به دالله ﷻ تسبیح کښي تیریږی.ابو یعلی کښي دی ړومبۍ ډله کومه به چه جنت ته ځی دهغوی مخونه به دڅوارلسمي شپې دسپوږمې په پړقیږی اودهغې نه روستوډلې مخونه به داسې وی لکه پړقیدونکی ستوری،دامخکښې بیان شوې حدیث په شان دې اوداهم پکښي دی چه دهغوی قدبه شپیته ګزه وی څنګه چه دادمﷺ قدوو.اوحدیث کښي دی چه زمادامت یوه ډله چه هغې تعدادااویازره دې،مخکښي به جنت ته داخل شي دهغوی مخونه به دڅوارلسمي سپوږمې په شان پړقیږی.دې اوریدلوسره عکاشه بن محصنؓ درخواست اوکړو چه یارسول اللهﷺ دعااوکړه چه الله ﷻ ماهم په هغوی کښي کړی.رسول اللهﷺ دعااوکړه چه الله دې هم د هغوی سره کړه.بیایوانصاری هم دغه عرض اوکړو،رسول اللهﷺ اوفرمائیل عکاشه دستانه مخکښي شو

**د اویا زرو بې حسابه جنت ته داخلیدو والا حدیث**:ددې اویازره بې حسابه په جنت کښي داخلیدل په ډیرو کتابونو کښي دسندسره دډیرصحابیانونه روایت شوې دې.بخاری اومسلم کښي دی چه زمادامت نه به اویازره یااووه سوه کسان جنت کښي یوځائې داخل شي دیوبل لاسونه به ئې نیولې وی.ټول به په یوقدم سره جنت داخل شي.دهغوی مخونه به څوارلسمي سپوږمې په شان وی.ابن ابی شیبه کښي دی ماسره زمادرب وعده ده چه زمادامت نه به اویازره کسان جنت ته ځی اوهرزرکسانوسره به اویازره کسان نور وی نه به دهغوی سره حساب کیږی اونه به عذاب وی دهغوی نه علاوه به نورې درې لپې الله ﷻ پخپل لاس باندې ډکې کړی اوجنت ته به ئې اورسوی،هلته به دهغوی عزت اوتعظیم وی.دهغه ځانې محافظې فرښتې به هغوی ته زیری کوی اودهغوی تعریفونه به کوی هغوی ته به سلام کوی ددې نه پس حصه په قران کښي پټه ساتلې شوې ده چه عمومیت باقی پاتې شی،مطلب داچه هغه وخت به دوی پوره خوشحاله شي،بې اندازې به سروراوسکون اوارام ورته حاصل شي هرقسمه طمع به دهغوی پوره شي.

**فتحت کښې واؤ کوم یو واؤ دې؟** اودابیانول ضروری دی چه څه خلقوونیلی دی چه وفتحت کښي واؤاتم دې اوددې نه څه مطلب دې چه دجنت اته دروازې دی هغوی ډیرتکلف کړې دې اوبې ضرورته مشقت ئې کړې دې،دجنت داته دروازوثبوت خوپه صحیح حدیثونوکښي موجوددې.مسنداحمدکښي دی چه کوم کس پخپل مال کښي دالله ﷻ په لارکښي مختلف قسمونه خرچ کړی هغه به دجنت د ټولو دروازو نه دننه غوښتلې شي.دجنت ډیرې دروازې دی.مونځ کونکې به په باب الصلوة باندې،سخی به په باب الصدقه باندې،مجاهدبه باب جهادباندې،روژه نیونکې به باب الریان باندې جنت ته غوښتلې شي.

دې اوريدلوسره حضرت ابوبکرصديقؓ تپوس اوکړوچه يارسول اللهﷺ اګرچه ددې څه ضرورت نشته چه هريوې دروازې نه دې اوغوښتلې شي چه په کومه دروازه ورشي مطلب جنت ته تلل دی،خوداسې هم څوك شته چه به په ټولودروازوباندې غوښتلې شي.حضورﷺ اوفرمائيل چه او،اوزماامیددې چه ته به هم په هغوی کښې نې.داحديث په بخاری اومسلم وغيره کښې هم دې.دبخاری اومسلم يوبل حديث کښې دی چه په تاسوکښې څوك پوره اوښه طريقې سره اودس اوکړی بيااشهدان لااله الاالله وان محمدعبده ورسوله اووائی دهغه دپاره دجنت اته واړه دروازې کهلاوشی چه په کومې غواړی لاړې شی.اوبه حديث کښې دی چه دجنت چابی لااله الاالله ده.

**دجنت د دروازو او د جنت د وسعت بيان:-** الله ﷻ دې مونږته هم نصيب کړی.دشفاعت په مطول حديث کښې دی.چه بيابه الله ﷻ اوفرمائی اې محمدﷺ په خپل امت کښې دې په کومويباندې چه حساب نشته هغوی دجنت ښی طرف ته دروازې باندې جنت ته بوځه خويه نورودروازوباندې هم دوی دنوروسره شريك دی.هم په هغه مې دې قسم وی دچاپه قبضه کښې دمحمدﷺ ساه ده چه دجنت دورشل دومره کهلاوده څومره فاصله چه په مکه اوهجرکښې ده يانې اوفرمائيل په هجراومکه کښې ده.بوروايت کښې دی مکه اوبصری کښې ده.(بخاری ومسلم)عتبه بن غزوانؓ په خپله خطبه کښې اوفرمائيل چه مونږته داذکرشوې دې چه دجنت ددروازوکهلاوالي څلويښت کاله دمزل هومره دې.يوه داسې ورځ به هم راځی چه جنت ته دزياتوخلقوته تلويه وجه باندې داکهلاؤدروازې به هم ډکې شی.(مسلم) مسند کښې دی رسول اللهﷺ فرمائی دجنت دورشل باندې څلويښت کاله مزل دې.دوی چه به کله جنت ته اورسی نو فرښتې به هغوی ته سلام کوی اومبارکی به ورکوی چه ستاسوعملونه،خبرې ستاسو کوششونه او ستاسوبدله هر يو څيز د خوشحالې اوخانسته والی دې.څنګه چه حضورﷺ ديوې غزوې په وخت کښې فرمائيلی وو،لاړشئ اوازاوکړئ چه جنت ته به صرف مسلمانان خلق ځی،يانې فرمائيلی ووچه صرف مومن خلق.فرښتې به هغوی ته وائی چه تاسويه اوس ددې ځائې نه څوك نه اوباسی بلکه تاسويه دلته هميشه دپاره نې.خپل داحالت ليدلوسره به هغوی خوشحاله شي اودالله ﷻ شکربه اداکوی،اووائی به الحمدلله مونږسره چه کومه وعده الله ﷻ دخپل رسولانوپه خولوباندې کړې وه هغه نې پوره کړه.هم دغه دعادهغوی په دنياکښې هم وه.﴿ رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴾ يعنی انې الله ﷻ مونږته هغه راکړه دکومې وعده چه تامونږسره دخپلورسولانوپه خولوباندې کړې ده اومونږ دقيامت په ورځ باندې رسوامه کړې،اوستاذات وعده خلافی نه کوی.اوبه ايت کښې دی چه دغه وخت به جنتيان داهم وائی چه دالله ﷻ شکردې چه هغه مونږته هدايت اوکړوکه هغه مونږته هدايت نه وې کړې نومونږهدايت نه شوموندلې.يقيناًدالله ﷻ رسولانومونږته حق راوړې وو.هغوی به داهم وائی چه ټول تعريفونه دالله دپاره دی.چه هغه زمونږنه غم لرې کړو.اوزمونږرب بخونکې اوقدرکولووالادې.چه هغه په خپل فضل اوکرم سره مونږته داپاك ځائې نصيب کړوچه دلته مونږته نه څه تکليف شته اونه څه دردداوغم.دلته دادی چه دوی به وائی هغه مونږدجنت دزمکې مالکان جوړکړو.څنګه چه فرمان دې ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُوْرِ﴾مونږبه زبورکښې دذکرنه پس ليکلی ووچه دزمکې وارثان به زمانيك خلق وی.هم دغه شان به نن جنتيان وائی چه پدې جنت کښې مونږکوم ځائې کورجوړوڅوك مونږته څه نشی وئيلې.
دا زمونږدعملونوبهترين بدله ده.

**جنتيانوباندې دانعامونوباران** دمعراج واقعه کښې په صحيح مسلم اوبخاری کښې دی چه دجنت کورونه دلوء لوء دی اودهغې خاوره دخالص مشك ده.ابن صائدنه چه کله حضورﷺ دجنت دخاورې تپوس اوکړونوهغه اووئيل چه سپينه ميده لکه خالص مشك.حضورﷺ اوفرمائيل دې رښتياوائی.(مسلم)

هم په مسلم كښې روايت كښې دى چه ابن صائد دحضورﷺ نه تپوس كړې وو. ابن ابى حاتم كښې د حضرت علىؓ قول روايت شوې دې چه دجنت دروازوته رسيدوسره به دوى يوه ونه اوګورى چه دهغې دجړونه دوه نهرونه وتلى دى په يوكښې به دوى غسل اوكړى چه دهغې سره به دوى دومره پاك شى چه ددوى مخ بدن به اوپړقيږى. دهغوى ويخته به ګمنزشوې اوتيل به په اولږى اوبيابه چرته د ګمنزولو ضرورت ورته نه وى. اودهغې نه به دبونى ټول څيزونه ختم شى. دجنت فرښتې به هغوى ته سلام كوى او مباركى به وركوى اوجنت ته تلوسره به هغوى ته وانى چه هريوكس ته به دهغه غلمان راخى اوپه خوشحالئ سره به په دوى باندې قربانيږى اووانى به تاسوخوشحاله شئ الله ﷻ تاسودپاره بې شماره نعمتونه پيداكړى دى. په هغوى كښې به څه په منډومنډولاړشى اوكومې حورې چه دهغوى دپاره په جنت كښې مخصوص شوى دى هغوى به وائى چه مبارك شئ فلانكې راغې. نوم اوريدوسره به په خوشحالې باندې تپوس كوى چه تاپخپله ليدلې دې؟ هغوى به وائى اومونږپخپلوسترګو ليدلې دې. دوى به دخوشحالې نه په دروازه كښې اودريږى. جنتي چه به كله محل ته راشى نواوبه اوګورى چه خانې په خانې ګديانې يعنى بالښتونه لږيدلې دى اوآبخورې (كوزې) ايخودلې شوې دى اوقالينونه خوارۀ شوى دى. دغه فرشونوته كتلونه پس به بياديوالونه ته اوګورى نوسرو اوشنو اوزيړو سپينو او د مختلف قسمه ملغلرونه به جوړشوى وى. بيابه دچهت طرف ته اوګورى نوهغه به دومره صفاوى چه د نوريه شان به پړقيږى. دهغې رڼرا به دسترګورڼرا ختمه كړى كه الله ﷻ هغه اونه ساتى. بيابه خپلوښځو باندې يعنى دجنت باندې دمينې نظراوكړى اوبيابه پخپل تختونوكښې په كوم چه دهغه خوښه وى كينى. اووانى به دالله ﷻ شكردې چه هغه مونږته هدايت راكړو.

كه الله ﷻ مونږته دالارنه وه خودلې نومونږدانه شوه موندلې. اوحديث كښې دى چه حضورﷺ فرمائيلى دى چه په هغې مې دې قسم وى دچاپه قبضه كښې چه زماساه ده كله چه به دوى دقبرونونه راوخى، هغوى ته به هركلې ونيلې شى. هغوى دپاره به دوزرووالااوښانې راوستلې شى چه په هغې باندې به د سروكيجاوې وى. دهغوى دپونانوتسمې به هم په نورباندې پړقيږى دااوښانې يوقدم دومره لرې ايږدى چه كوم خانې پورې دانسان نظر رسى. دوى به ديوونې خواه ته اورسى، چه دهغې لاندې به دوه نهرونه روان وى. ديوې اوبه به دوى اوڅكى ددهغې په وجه به ددوى دخيټې نه ټول فضول څيزونه اوګندباهرته وخى. په دويم نهركښې به دوى غسل اوكړى بيابه دهميشه دپاره ددوى په بدن باندې ګندنه وى ددوى ويختد به نه خرابيږى اوددوى دبدن اومخ خانست به هميشه وى. اوس به دوى دجنت دروازوته را اورسى اوبه وينى چه دسروياقوتويوه كنډه يعنى زنځير ده چه هغه دسروزروتختې ته اويزان ده دوى به هغه اوخوزى نويوډيرخانسته اودسازاوازبه ترې پيداشى دهغې اوريدلوسره به دهرې يوې حورې ته پته اولږى چه دهغوى خاوندان راغلل دوى به داروغه ته حكم اوكړى چه لاړشه اودروازه كولاؤكړه هغه به دروازه كهلاؤكړى. دې به دننه ننوتلوسره دداروغه نورانى مخ ليدلوسره په سجده كښې پريوخى خوهغه به نې منع كړى اواوبه وانى چه تاسوخپل سراوچت كړئ زه خوستاسوماتحت يم. اودخپل خان سره به نې بوخى چه كله هغه به دياقوتوخيمې دروازې ته اورسى نوهلته به دهغه حورې دخيمې نه بهرته راشى اوورغاړه به وخى اوورته به وائى چه ته زمامحبوب نې اوته زماخوښ نې زه به هميشه دلته اوسم زه به نه مرم. زه دنعمتونوو الايم اوغريبئ اومحتاجې نه زه لرې يم. زه به هميشه دستانه راضى اوخوشحاله يم كله به هم نه خفه كيږم. زه به هميشه دستاپه خدمت كښې حاضره يم اواخوا ديخوا به نه خم. دوى به بيا كورته خى چه دهغې چت به دفرش نه يولاكه لاسه اوچت وى. دهغې ټول ديوالونه به دقسماقسم اورنګا رنګ ملغلرووى، دهغه په كوركښې به اوياتختونه وى اوپه هرتخت باندې اويا كټونه اوپه هغې كښې به په هريوه بستره كښې اوياحورې وى اوپه هرې يوې حورې باندې به اوياجوړې وى اوددې ټولوپردونه

به لاندې دهغې په پنډوکښې مازغه ښکاري.دهغوی دجماع یواندازبه یوه ټوله شپه وی.دهغوی د باغونواوکورونونه لاندې به نهرونه بهیږی چه دهغې اوبه به کله هم خراب بوئی نه کوی دموتیانوید شان به صفاوی.اودپیونهرونه به وی چه دهغې خوندبه کله هم نه خرابیږی.هغه پیْ به دځناوردبدن نه وی حاصل شوې.دمختلف قسمه میوونه ډکې ونې به څلوروطرفوته وی چه دهغې میوې به ددوی طرف ته راښکته شوې وی.که په ولاړه ترې میوې شکول غواړی خوصحیح ده اوکه په ناسته ترې شکول غواړی نوداخاښونه به دومره ښکته شی چه دوی به ترې اوشکوی.که دوی په ملاسته باندې ترې میوې غواړی نوخاښونه به ورته نورهم ښکته شی.بیاحضورﷺ ددې ایت تلاوت اوفرمائیلو ﴿ وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَالُهَا﴾ یعنی دهغه جنتی ونوسوری به په هغوی باندې پراته وی اودهغې میوې به دوی ته نزدې کړې شی.چه دوی کله دخوراك خواهش اوکړی نودشین یاسپین رنګ مرغې به ددوی خواه ته راشی اوخپلې وزرې اوچتې کړی چه دوی دکوم ځائې نه دهغې غوښه خوړل غواړی اوبه خوری بیا به هغه مرغې چه څنګه ژوندې وه هم هغه شان به شی اووابه لوځی.فرښتې به هغوی ته راځی او سلام به کوی اووائی به چه دا جنتونه دی اوتاسوددې دخپل عملونوپه وجه باندې ددې وارثان جوړ شوې یئ.که دیوې حورې ویخته په زمکه پریوتل نوهغه به دخپل چمك اوخپل توروالی په وجه نور روښانه کړی اوتوروالې به زیات شی. دا حدیث مرسل دې خوغریب دې.والله اعلم.

| وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ | حَآفِّيْنَ | مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ | يُسَبِّحُوْنَ | بِحَمْدِ رَبِّهِمْ |
|---|---|---|---|---|
| اواوبه وینې ته فرښتې | حلقه جوړونکې | چاپیره دعرش نه | او تسبیح به وائي | اسره دثنا درب خپل |
| اوته به فرښتې اووینې چې دعرش نه ګیر چاپیره به ئې حلقه جوړه کړې وی اودخپل رب تسبیح اوحمد به وائی | | | | |

| وَقُضِيَ | بَيْنَهُمْ | بِالْحَقِّ | وَقِيْلَ | الْحَمْدُ لِلّٰهِ |
|---|---|---|---|---|
| او فیصله به اوکړې شی | په منځ دهغوئ کښې | په حقه سره | او اوبه وئیلې شی | چې ثنا |
| او (په دغه ورځ) به دخلقو په مینځ کښې په انصاف سره فیصله اوکړې شی او اوبه وئیلې شی | | | | |

| رَبِّ | الْعٰلَمِيْنَ۝ |
|---|---|
| الله لره ده | چې پالونکې دمخلوقاتو دې |
| چې ټول تعریفونه الله ﷻ دپاره دی چې دټول مخلوق رب دې | |

**قوله تعالىٰ: وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ**

**د الله ﷻ د عظمت او لويئ بيان:** چه الله ﷻ دجنتیانواودوزخیانوفیصله اوکړه،اوهغوی خپل ځایونوته د رسولو بیان هم اوشواوپه هغې کښې دخپل انصاف ثبوت هم ورکړونوپه دې ایت کښې فرمائیلی دی چه دقیامت په ورځ به تاسووینئ چه فرښتې به دالله ﷻ دعرش نه څلوروطرفوته ولاړې وی اودالله ﷻ حمد اوثناء اوبزرګی به بیانوی،په ټول مخلوق کښې به دعدل اوحق فیصلې شوې وی ددې انصاف اورحم والا فیصلوباندې به دکائناتو یوه یوه زره دالله ﷻ تعریف کوی اوژوندی لومړه خیزونه به اوازکوی.چه ﴿الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾ چه هغه وخت به هریومړاوژوندې خیزبه دالله ﷻ صفت بیانوی په دې وجه باندې دلته دمجهول صیغه استعمالولوپه وجه باندې فاعل عام کړې دې.قتاده رحمه الله فرمائی چه د مخلوق د پیدائش شروع هم دحمدسره کوی.فرمائی﴿ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ﴾اودمخلوق ختمیدل هم د حمد سره کوی.فرمائی.﴿ وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾

الحمدلله دسورة زمرتفسیرختم شو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اٰياتونه | | سورة المومن مكية وهي خمس وثمانون اٰية وسبع ركوعات | | ركوع ګاني |
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ⑧٥ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډېرمهربان زيات رحم كونكې دې | | ⑨ |
| حٰمٓ ۚ ① تَنۡزِيۡلُ الۡكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِيۡزِ الۡعَلِيۡمِ ۙ② | | | | |
| ح.م \| نازليدل \| ددې كتاب \| دطرفه دالله نه دى \| چې غالب دې \| په هر څه پوهه دې \| | | | | |
| حم داكتاب (يعنى قران پاک) دالله دطرفنه نازل شوې دې \| هغه الله چې زبردست په هرڅيز پوهه دې | | | | |
| غَافِرِ الذَّنۡۢبِ وَقَابِلِ التَّوۡبِ شَدِيۡدِ الۡعِقَابِ ۙ ذِي الطَّوۡلِ ؕ | | | | |
| بښونكې دګناه دې \| او قبلونكې دتوبې دې \| سخت عذاب وركونكې دې \| خاوند دفضل دې \| | | | | |
| ګناه بښونكې اوتوبه قبلونكې دې \| په سزا كښې سخت اود ډېر لوئې فضل خاوند دې | | | | |
| لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ اِلَيۡهِ الۡمَصِيۡرُ ③ | | | | |
| نشته لائق دعبادت \| مګر هغه دې \| خاص هم هغه ته \| واپس ورتلل دى \| | | | | |
| د هغه نه سوا بل معبود نشته \| هم هغه ته (دټولو) واپس كيدل دى \| | | | | |

**دالم او حم والا سورتونه او د سلفو اقوال:**: دبعضې مشرانوقول دې چه كوم سورتونه دحم نه شروع شوى دى هغې ته حواميم وئيل مكروه دى. **ال حم** وئيل پكاردى.حضرت محمدبن سيرين رحمه الله هم داسې وائى. حضرت عبدالله بن مسعود فرمائى **حم** دقران ديباچه ده.حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه د هر يو څيز دروازه وى اودقران كريم دروازه حم ده يائې اوفرمائيل حواميم ده.حضرت مسعربن كدام رحمه الله فرمائى دې سورتونوته عرائس وئيلې شى.عروس ناوې ته وائى حضرت عبدالله رضي الله عنه فرمائى چه دقران مثال دهغه كس په شان دې چه هغه دخپل كورولودپاره دځه ښه منزل په تلاش كښې وتلې وى اويوداسې ځائې چه هلته تازه باران شوې وى دې لرشان مخكښې تلې وى اواوګورى چه ښنه چمنونه دى.دې لمده زمكه ليدلوباندې مخكښې نه حيران ووخودهغه حيرانتياتوره هم زياته شوه.هغه ته اوونيلى شوچه مخكښې مثال خودقران كريم دعظمت مثال دې.اوددې باغيچومثال داسې دې لكه چه قران كښې دحم والا سورتونه(بغوى).ابن عباس رضي الله عنه فرمائى چه دهرڅيزڅه دروازه وى اودقران دروازه هم داحم والا سورتونوته دى.ابن مسعود رضي الله عنه فرمائى چه زه كله تلاوت كوم اودحم والاسورتوته اورسم نوماته داسې ښكارى لكه چه زه دښنوباغونو سيل كوم.يوكس ابودردا رضي الله عنه په جمات جورولوباندې اوليدو.اوتپوس يې ترې اوكړو چه داڅه دى.ورته ئې اوفرمائيل چه دازه دحم والاسورتونودپاره جوروم.ممكن ده چه داهغه جمات وى كوم چه ددمشق په قلعه كښې دننه دې دابودرداء نوم سره منسوب دې اوداهم كيديشى چه دهغې حفاظت دابودرداء دنيك نيتې اوپه څه وجه چه داجمات جورشوې وو.دهغې دبركت په وجه وى.په دې كلام كښې ددشمنانوباندې دفتح اوكاميابې دليل هم دې.څنګه چه حضور ﷺ په څه جهادونوكښې خپل لښكرته فرمائيلې وو كه تاسودشپې يوناساپه حمله اوكړئ نوستاسوپيژندګلوپه خاص لفظونوكښې **حم لاينصرون** سره ده.په يوروايت كښې تنصرون دى.مسندبزاركښې دى چه چادايت الكرسى اوسوره المؤمن رومبې حصه اوونيله هغه به دټولې ورځ دګناهونونه محفوظ وى.داحديث په ترمذى كښې هم دې او د دې په يوروايت كونكى باندې څه جرح ده.

قوله تعالى:: غَافِرِ الذَّنْبِ
دعذاب اوثواب مالک الله ﷻ دي -دسورتونوپه شروع کښې چه دحم په شان حرفونه راځي دهغې پوره تفصیل
مونږدسوره بقره دتفسیرپه شروع کښې کړي دي اودهغې دواپس بیانولوڅه ضرورت نشته. بعضې وائی
چه حم دالله ﷻ یونوم دي اوددې په ثبوت کښې هغوی داشعرپیش کوی.

یذکرنی حم والرمح شاجر فهلا تلا حم قبل التقدم

یعنی داماته حم یادوی چه کله نیزه تیاره وی بیادهغې نه مخکښې هغه حم ولې اونه ونیلو . د ابوداؤد
اوترمذی په حدیث کښې دی که په تاسوباندې دشپې حمله اوشی نوحم لاینصرون وائی د دې صحیح سند
دې.ابوعبیده وائی زماداخوښه ده چه داحدیث داسې بیان شی چه حضورﷺ فرمانیلی دی.چه تاسو
اووایئ حم لاینصرون یعنی دنون نه بغیر.یعنی دهغوی په نزدباندې لاینصرو،دحم اجزاء دی یعنی چه کله به
تاسوداوایئ نوتاسویه مغلوب کیږې نه نوقول صرف حم پاتې شوداکتاب یعنی قران مجیدالله ﷻ د
طرف نه نازل شوې دې چه هغه دعزت اوعلم والادې چه دهغه شان دهرقسمه بې ادبې نه پاک دې اوچه
د هغه نه یوه ذره هم پټه نه ده که هغه په څومره پردوکښې ولې نه وی.هغه ګناهونه بخلووالادې اوچه
خوك دهغه طرف ته ښکته کیږی دهغه طرف ته متوجه کیدووالادې.اوڅوك چه دهغه نه بې پروانې کوی
اودهغه مخکښې سرکشې اوکبرکوی اودنیاخوښه کړی اوداخرت نه مخ واړوی الله ﷻ دهغه فرمانبر
داری پریږدی اوهغه ته سخت عذاب اوسختې سزاګانې ورکولووالادې.څنګه چه فرمان دې(نَبِّئْ عِبَادِيٓ
أَنِّيٓ أَنَا الْغَفُورُ الرَّحِيمُ)یعنی زمابندیان خبرکړه چه زه بخښلووالااورحم کولووالا اومهربان یم اوزماعذاب
دردناك دې.نورهم داسې ایتونه په قران کریم کښې ډیرزیات دی چه په هغې کښې درحم اوکرم سره د
عذاب اوسزابیان هم شته چه بنده دویرې اوامیدپه حالت کښې وی. هغه دلوې شان والاغنی دې اوډیر
بنه والی والادې ډیراحسانونواوزیات نعمتونواورحمتونووالادې.په بندیانوباندې د هغه نعمتونه او
رحمتونه دومره دی چه هغه شمارلې هم نه شی چه له دهغې شکر اداکړی.بلکه حقیقت دادې چه د یو
نعمت هم شکرپوره نشی اداکولې.دهغه په شان څوك نشته اودهغه یوصفت هم په چاکښې نشته دهغه
نه علاوه څوك دعبادت لائق نشته اونه دهغه نه علاوه څوك د پرورش والا شته. دهغه طرف ته به ټول
خې.هغه وخت به هغه هرعمل کونکي ته دهغه دعمل مطابق بدله ورکوی.اوډیر زر به دحساب نه فارغ
شی.دامیرالمومنین حضرت عمربن خطاب نه یوکس دیوې مسئلې تپوس اوکړو چه ماڅوك قتل کړو
نوزماتوبه قبلیدې شی.هغوی ورته دایت دشروع دوه ایتونه تلاوت اوفرمانیل اواونې فرمانیل چه نا
امیده کیږه مه اونیك عمل کوه.(ابن ابی حاتم)
حضرت عمرؓ ته به یوشامی کله کله راتلواوهغه لږدغه شان سړې وو.یوځل هغه ډیروخت دپاره رانه
غې نوحضرت عمرؓ دخلقونه دهغه تپوس اوکړونوهغوی ورته اوونیل چه زیات شراب نې څکل شروع
کړی دی حضرت عمرؓ خپل کاتب رااوغوښتو.اوورته نې اوونیل لیکه داخط دې دعمربن خطاب د
طرف نه فلان بن فلان ته.دسلام نه پس عرض دادې چه تاته دهغه الله تعریف کوم چه دهغه نه علاوه
څوك دعبادت لائق نشته چه هغه ګناهونه بخلووالاسخت عذاب والااولوې احسان والادې اوچه ټول
خلق به د هغه طرف ته خی داخط هغه ته لیږلوسره حضرت عمرؓ خپل ملګروته اوونیل دخپل رور
دپاره دعاکوئ چه الله ﷻ دهغه زړه متوجه کړی اودهغه توبه قبول کړی.کله چه هغه کس ته دحضرت
عمرؓ خط اورسیدونوهغه دغه خط باربار اولوستلواوداني ونیل شروع کړل چه زه الله ﷻ دخپل عذاب
نه ویرولې یم اودخپل رحمت امیدسره نې دګناهونودمعاف کولووعده هم کړې ده.څوځله نې هغه
اوونیلو او په ژړاشواوبیانې ریښتونې توبه اوکړه.کله چه فاروق اعظمؓ ته دایته اولګیده نوډیرزیات
خوشحاله شواواونې فرمانیل هم داسې کوئ چه کله تاسویومسلمان روروپه ګناه کښې اووینې نوهغه

نیغ اومضبوط کړي اوددې سره دالله ﷻ نه دعاکوئ، دشیطان مددګارمه جوړیږئ. حضرت ثابت بنانی رحمه الله فرمائی چه حضرت مصعب بن زبیر رضی الله عنه سره کوفه ته نزدې ووم چه ماپه یوباغ کښې دوه رکعت مونځ شروع کړواوپه هغې کښې مې دسورت مومن تلاوت شروع کړو. زه لاد ﴿اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ﴾ ته رسیدلې ووم چه یوکس چه هغه زماشاته په یوسپین خچرباندې سورووواوپه هغې باندې دیمن څادرونه وو. ماته نې اوونیل چه کله ﴿غَافِرِ الذَّنْۢبِ﴾ اووائې نو "یاغافرالذنب اغفرلی ذنبی" وایه اوچه کله ﴿وَقَابِلِ التَّوْبِ﴾ اووائې او اوایه قابل التواب اقبل توبتی اوچه کله ﴿شَدِيْدِ الْعِقَابِ﴾ اووائې نو وایه یاشدید العقاب لاتعاقبنی. حضرت مصعب رحمه الله فرمائی چه ماورته کوربنظراوکتل نوڅوك نه وو، چه کله فارغ شوم نودروازې ته لاړم چه کوم کسان ناست وودهغوی نه مې تپوس اوکړوچه تاسوسره څوك کس تیرشوې دې چه په هغه باندې دیمن څادرونه وو. هغوی اوونیل نه مونږ خوڅوك په راتلوباندې اوتلوباندې نه دې لیدلې. بس خلقوداخیال کولو چه داحضرت الیاس علیه السلام وو. دا روایت په بل سندسره هم روایت شوې دې. اوپه هغې کښې دحضرت الیاس علیه السلام ذکرنشته. والله سبحانه ﷻ اعلم.

مَا يُجَادِلُ

| نۀ کوی جګړه |

| دالله ﷻ دایتونو په باره کښې

فِيْۤ اٰيٰتِ اللّٰهِ | اِلَّا الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | فَلَا يَغْرُرْكَ

په ایتونو دالله کښې | مګر هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | پس په دوکه کښې وانچوی تالره |

دغه خلق جګړې کوی | چې کفرئې اختیار کړې دی | نو ته په دې غلط مه شې

تَقَلُّبُهُمْ | فِي الْبِلَادِ ۝ | كَذَّبَتْ | قَبْلَهُمْ | قَوْمُ نُوْحٍ

ګرځیدل دهغوئ | په ملکونو کښې | دروغ ګنړلې دې (رسول خپل) | مخکښې ددوئ نه | قوم دنوح

چې دوئ په ښارونو کښې (خوشحاله) اوړی راوړی | ددوئ نه مخکښې دنوح قوم اود هغوئ نه پس نورو

وَّالْاَحْزَابُ | مِنْۢ بَعْدِهِمْ ص | وَهَمَّتْ | كُلُّ اُمَّةٍۢ | بِرَسُوْلِهِمْ

او نورو ډیرو ډلو هم | روستو دهغوئ نه | او قصد اوکړو | هر امت (قوم) | په رسول خپل |

ډلو (پیغمبران) دروغ اوګنړل | اوهرې یوې ډلې دخپل پیغمبر دبندی کولو اراده اوکړه

لِيَاْخُذُوْهُ | وَجٰدَلُوْا | بِالْبَاطِلِ | لِيُدْحِضُوْا | بِهِ

چې اونیسی هغه | او کوشش اوکړو هغوئ | په باطل سره چې ختم کړی ، ښکته کړی | په هغې سره

او په ناحقه جګړې یئ ورسره شروع کړې | چې پدې سره حق دین ناکامه کړی

الْحَقَّ | فَاَخَذْتُهُمْ قف | فَكَيْفَ | كَانَ | عِقَابِ ۝ | وَكَذٰلِكَ | حَقَّتْ

حق | پس اونیول ماهغوئ | پس څرنګې | ووه | عذاب زما | او همدارنګې | حقه (ثابته) ده |

نو ما هغوئ (په عذاب سره) راونیول | نو اوګوره زما سزا څنګه وه | اودغه شان ستا

كَلِمَةُ رَبِّكَ | عَلَى الَّذِيْنَ | كَفَرُوْۤا | اَنَّهُمْ | اَصْحٰبُ

خبره درب ستا | په هغه کسانو باندې | چې کفر ئې کړې دې | چې بیشکه هغوئ | خاوندان

درب فیصله په کافرانو باندې ثابته شوې ده | چې هغوئ دوزخیان دی

| |
|---|
| النَّارِ ﴿٦﴾ |
| دوور دی \| |
| او هغه فرښتې چې عرش نې اوچت کړې دې \| |

قوله تعالى: مَا يُجَادِلُ فِيْ اٰيٰتِ اللّٰهِ

يحق خبره کښې شکونه پیداکول دکافرانوکار دي: الله ﷻ فرماني چه دحق دښکاره کيدونه پس دانه منل اوپه دې کښې دنقصان پيداکولو کوشش دکافرانوکار دې.که داخلق مالداراوعزت والاوی نوپه دې باندې تاسومه دهوکه کیږئ که دوی دالله ﷻ خوښ نه وونودوی ته به نې خپل نعمتونه نه ورکول؟ځنګه چه به بل ځائې کښې فرمائيلې دی،چه دکافرانوپه ښارونوکښې تګ راتګ دې تاسوته دهوکه درنه کړي،داخوهسې دلږه شان فائده ده اخری انجام خوددوی دوزخ دې چه هغه بدځائې دې.اوپه ايت کښې ارشاددې چه مونږهغوی ته ډيره لږه فائده ورکوواوپه اخرکښې به هغوی ته سخت عذاب ورکولې شی. بياالله ﷻ خپل نبي ﷺ ته تسلی ورکوی چه دخلقوددروغژن ونيلوباندې خفه کيږه مه دځان نه دمخکښې نبيانوحالت اوګوره چه هغوی ته هم دروغژن ونيلې شوی دی اوپه هغوی باندې دايمان راوړلو والا تعداډيرکم وو.حضرت نوح ؑ چه هغه دادم په اولادکښې دټولونه ړومبې رسول دې چه کله په خلقو کښې په اول خل بت پرستی شروع شوې وه نوهغه خلقودهغه هم اونه منل اودهغه نه پس چه څومره نبيان راغلل دهغوی امت دهغوی اونه منل بلکه په هرزمانه کښې دهغوی امت هغوی قيدکول اووهل غوښتل.اوپه بعضوکښې هغوی کامياب هم شول.اوپه خپل شکونوباندې اوپه باطل باندې حق کم هم اوګڼړلو.

قوله تعالى: لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ فَاَخَذْتُهُمْ

طبرانی کښې درسول الله ﷺ فرمان دې چه چادباطل مدداوکړوچه حق کمزورې کړی ددې نه الله ﷻ او د هغه رسول بری دې.الله ﷻ فرمائی چه مادغه باطل خلق اونيول اوهغوی مې دهغوی دګناهونو او د هغوی دسرکشۍ په وجه باندې هلاک کړل.اوس تاسواووائې چه زماعذاب په هغوی باندې څنګه شو؟ يعنی ډيرسخت تکليف اودردناک.څنګه په هغوی باندې دهغوی دناپاک کارونوپه وجه باندې عذابونه نازل شول اګرکه دوی نورنبيان ربښتونې اوګڼړی خوچه ترڅودستادنبوت قائل نه وی دهغوی ربښتياوالې مردوددې.والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِيْنَ | يَحْمِلُوْنَ | الْعَرْشَ | وَمَنْ | حَوْلَهٗ |
| هغه فرښتې \| | چې اوچتوی \| | عرش \| | او هغه فرښتې \| | چې چاپيره دی دعرش نه \| |

او هغه فرښتې چې عرش نې اوچت کړې دې | اوکومې چې ترې نه ګير چاپيره دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُسَبِّحُوْنَ | بِحَمْدِ رَبِّهِمْ | وَيُؤْمِنُوْنَ بِهٖ | وَيَسْتَغْفِرُوْنَ |
| هغوئ تسبيح وائی \| | دثنا درب خپل سره \| | او ايمان راوړی په هغه باندې \| | او دبښنې دعا غواړی \| |

هغوئ ټولې دخپل رب تسبيح اوتعريف بيانوی | اوپه هغه ايمان راوړی | اودمومنانو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | رَبَّنَا | وَسِعْتَ | كُلَّ شَيْءٍ |
| دپاره دهغه کسانو \| | چې ايمان نې راوړې دې \| | اے ربه زمونږه \| | رسيدلې نې ته \| | هر څيز ته |

دپاره داسې ښښنه غواړی | چې ائې زمونږ ربه ! ستا رحمت او ستا علم په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَّحۡمَةً | وَّعِلۡمًا | فَاغۡفِرۡ | لِلَّذِيۡنَ | تَابُوۡا | |
| په لحاظ د رحمت سره | او د علم سره | پس اوبښه | هغه کسانو لره | چې توبه ئې ایستلې ده | |

هر څه باندې راخور شوې دې | نو هغه کسان اوبښه چا چې توبه اوویستله

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاتَّبَعُوۡا | سَبِيۡلَكَ | وَقِهِمۡ | عَذَابَ | الۡجَحِيۡمِ ۝ | رَبَّنَا |
| او پیروي ئې کړې ده | د لارې ستا | او بچ کړې هغوئ | د عذاب | د دوزخ نه | اے ربه زمونږه |

او ستا په لار روان دی | او د دوزخ د عذاب نه ئې بچ کړه |............ اني زمونږ ربه!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَدۡخِلۡهُمۡ | جَنّٰتِ | عَدۡنِ | الَّتِيۡ | وَعَدۡتَّهُمۡ |
| او داخل کړې دوئ | جنتونو | د همیشه اوسیدو ته | هغه | چې وعده کړې ده تا د دوئ سره |

ته هغوئ د همیشه اوسیدلو باغونو کښې داخل کړه | د کوموچې ورسره تا وعده کړې وه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَنۡ | صَلَحَ | مِنۡ اٰبَآئِهِمۡ | وَاَزۡوَاجِهِمۡ | وَذُرِّيّٰتِهِمۡ ؕ |
| او هغه څوک | چې نیکان دی | د پلارانو د دوئ نه | او د ښځو د دوئ نه | او د اولاد د دوئ نه |

او هغوی هم داخل کړه کوم چې د هغوئ پلارانو ، بیبیانو او اولاد کښې نیکان دی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّكَ | اَنۡتَ | الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ۝ | وَقِهِمُ | السَّيِّاٰتِ ؕ | وَمَنۡ |
| بیشکه ته | هم ته | غالب ئې د حکمت خاوند ئې | او اوساته هغوئ | د بدونه | او هغه څوک |

بیشکه چې ته زبردست د حکمت خاوند یې | او هغوئ د هر قسم تکلیفونو نه محفوظ اوساته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَقِ السَّيِّاٰتِ | يَوۡمَئِذٍ | فَقَدۡ رَحِمۡتَهٗ ؕ | وَذٰلِكَ | هُوَ الۡفَوۡزُ | |
| چې تا اوساتو د بدونه | په دغه ورځ | نو بیشکه رحم اوکړو تا په هغه | او دا | هغه کامیابی ده | |

او تا چې په دغه ورځ څوک د تکلیف نه محفوظ کړو | نو هغه سره دې لویه مهربانی اوکړه

| |
|---|
| الۡعَظِيۡمُ ۝ ع |
| لویه |

اوداډیره لویه کامیابی ده |

**قوله تعالی: اَلَّذِيۡنَ يَحۡمِلُوۡنَ الۡعَرۡشَ**

**د عرش اوچتونکی فرښتې د مومنانو دپاره دعا کوی:** عرش نیولو والا او چاپېره نور فرښتې د هغوی سره خواه کښې تولې بزرګې فرښتې یو طرف ته د الله ﷻ بزرګی بیانوی او ټولو عیبونو او کمو نه هغه پاکی بیانوی، دویم طرف ته هغه د ټولو تعریفونو قابل ګڼړی او د هغه حمدا وثناء بیانوی. یعنی چه څه په الله کښې نشته د هغې انکار کوی او کوم صفتونه چه په هغه کښې زی هغه ثابتوی او په هغې باندې ایمان او یقین لری. د هغه نه عاجزی کوی او ټول ایماندار سړی، او ښځو دپاره استغفار کوی. دزمکې والو په الله ﷻ باندې بې لیدلو ایمان دې په دې وجه باندې الله ﷻ خپل مقرب فرښتې د هغوی د ګناهونو د معافی غوښتلو دپاره مقرر کړی دی او چه څوک بې لیدلو هر وخت د هغوی د ګناهونو معافی غواړی. صحیح مسلم کښې دی چه کله مسلمان د خپل مسلمان رور دپاره د هغه په غیر موجودګی کښې دعا کوی نو فرښتې د هغه په دعا باندې امین وائی او د هغه دپاره دعا کوی چه الله ﷻ دې تا ته هم دغه درکړی چه ته د هغه مسلمان دپاره

دعا کوي. مسند احمد کښې دی چه امیه بن ابی الصلت دځه شعرونو رسول اللهﷺ تصدیق کړې دې ځنګه
چه داشعر دې.

زحل وثور تحت رجل یمینه والنسر للاخری ولیث مرصد

یعني دعرش والاځلورفرښتې دی دوه یوطرف ته اودوه بل طرف ته.حضورﷺ اوفرمائیل رښتیا دی،
بیاهغه اوونیل.

والشمس تطلع کل اخر لیلة حمراء یصبح لونها یتورد

تأبی فما تطلع لنافي رسلها الامعذبة والا تجلد

یعني نمریه سوررنګ کښې راوځي،هغه به ګلابی شی،په خپل شکل کله هم صفانه ښکاری بلکه تت
وی.حضورﷺ اوفرمائیل رښتیادی.ددې سند ډیرپوخ دې.اوددې نه صفاظاهریږی چه هغه وخت دعرش
ځلورفرښتې دی،اودقیامت په ورځ به اته فرښتوعرش نیولې وی ځنګه چه په قران مجیدکښې دی.
﴿وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمَٰنِيَةٌ﴾اوددې ایت نه مطلب اوددې حدیث په استدلال کښې یوسوال باتې
کیږی چه دابوداؤدپه یومشهورحدیث کښې دی چه بطحاکښې رسول اللهﷺ خپلو صحابیانو ته یو
وریځ اوخودله اوتپوس ئې ترې اوکړوچه ددې نوم څه دې؟ هغوی اوونیل سحاب .حضورﷺ اوفرمائیل
دې ته مزن هم وئیلې کیږی.هغوی اوئیل او،اوئې فرمائیل عنان هم؟عرض ئې اوکړواو.تپوس ئې اوکړو
تاسوته پته ده په اسمان اوزمکه کښې څومره فاصله ده؟صحابهؓ اوونیل نه.اوئې فرمائیل د یو اویا،
یا دوه یادرې اویاکاله مزل دې.بیادهغې دپاسه اسمان هم په دومره فاصله باندې دې،هم دغه شان اووم
اسمان،په اووم اسمان باندې یوسمندردې چه دهغې ډوب والې هم دغه هومره دې بیاپه هغې باندې اته
فرښتې دغریخوچیلوپه شان دی چه دهغوی دخکرنه خپوړوې فاصله هم دغه هومره ده،ددې نه شاته د
اللهﷻ عرش دې.چه دهغې اوچت والې هم دغه هومره دې.بیادهغې دپاسه اللهﷻ دې. ترمذی کښې هم
داحدیث دی اوامام ترمذی دې ته غریب وائی.ددې نه معلومیږی چه عرش الهی اوس داوخت د اتو
فرښتودپاسه دې.شهرین حوشبؒ فرمائی چه دعرش نیونکی اته دی.چه په هغې کښې د ځلورو خو دا
تسبیح ده.سبحانك اللهم وبحمدك لك الحمد علی حلمك بعد علمك یعني ائې اللهﷻ دستاپاك ذات دپاره ټول حمد
او ثناء دی چه سره دعلمه ته معاف کول کوې.اودنورو ځلورو تسبیح داده. سبحانك اللهم وبحمدك لك الحمد علی
عفوك بعد قدرتك یعني ائې الله د قدرت سره چه ته کومه معافی کوې،په هغې باندې مونږدستاپاکی او
ستاتعریف بیانوو.په دې وجه دمومنانوپه استغفارکښې هغوی داهم وائی چه ائې الله ستارحمت اوعلم
هر یوځیزپه لوې والی کښې اخستلې دې.
دادم داولادپه ټولوګناهونواوخطاګانوباندې ستارحمت دې.دغه شان ستاعلم کښې هغه ټول کارونه او
قولونه دی.دهغوی دټولوکارونواوحرکاتونه ته خبرئې.نوته هغه خراب خلق کوم چه توبه اوکړی ستا
طرف ته ښکته شی اوګناهونه پریدی اوستاحکمونه اومنی اونیکیانی کوی اوبدیانې پریدی اوهغوی
ته ددوزخ دردناك عذاب نه خلاصې ورکړه اوهغوی سره دخپل مورپلاراوښځواوبچوجنت ته بوځې چه د
هغوی سترګې یخې وی،اګرکه دهغوی عملونه دومره نه وی خودهغوی درجې اوچتې کړه.ځنګه چه
دباری تعالی عزاسمه،فرمان دې.﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ﴾یعنی کوم خلقوچه ایمان راوړواودهغوی د
ایمان اتباع دهغوی اولادهم اوکړه مونږبه هغه اولادهم دهغوی سره ملاؤ کړو او د هغوی څه عمل به نه
کموو.په درجوکښې به ټولوته برابری ورکړوچه دواړه طرفوته سترګې یخې وی. اوبیابه دانه کوی چه د
اوچتو درجووالابه ښکته کړی بلکه په خپل رحمت اواحسان سره به دښکته درجووالا اوچت کړی.
سعیدبن جبیرؒ فرمائی مومن به په جنت کښې تپوس کوی چه زماپلارزمارور اوزما اولاد چرته دی؟
جواب به ورته ملاؤشی چه دهغوی نیکیانې دومره نه وې چه هغوی دې درجې ته رارسیدلې وې. دې به

والی چه ماخودخپل خان دپاره اودهغوی دپاره داټول عملونه کړي وو.نوالله ﷻ به هغوی هم ددې درجوته اورسوی.بیاهغه هم ددې ایت تلاوت اوفرمائیلو ﴿رَبَّنَا وَأَدْخِلْهُمْ﴾ مطرف بن عبدالله فرمائیلی دی چه ایماندار وخیرخواهی فرښتې هم کوی.بیانې هم داایت تلاوت کړو اود شیطانانو بد خواهي کوی. نو هغه داسې غالب دې چه په هغه بل څوك غالب نشته اوچه هغه څوك منع کولې نشی.ته چه څه غواړې هغه کیږی اوچه څه نه غواړې هغه نه کیږی.ته په خپل اقوالواوکارونو اوشریعت اوتقدیرکښې حکمت والائې.ته هغوی په دنیاکښې دخرابونه اودهغې د نقصان نه په دواړو جهانونوکښې محفوظ اوساته. د قیامت په ورځ به هغه رحمت والاګڼړلې شی چه کوم ته دخپلې سزا اوعذاب نه بچ کړې.په حقیقت کښې لویه کامیابی اوپوره مقصد اوفتح هم په دې کښې ده.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِیْنَ | کَفَرُوْا | یُنَادَوْنَ | لَمَقْتُ اللّٰهِ |
| بیشکه هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | آواز به اوشي هغوئ ته | خامخا غصه دالله |
| بیشکه کومو خلقو چې کفر کړې دې | | هغوئ ته به دا آواز ورکولې شي چې لکه څنګه | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَکْبَرُ | مِنْ مَّقْتِکُمْ | اَنْفُسَکُمْ | اِذْ | تُدْعَوْنَ | اِلَی الْاِیْمَانِ |
| ډیره زیاته ده | دغصې ستاسو نه | ځانونو خپلو ته | کله چې | به اوبللې شوئ تاسو | ایمان ته |
| (نن)ستاسو دځان نه نفرت دې | ددې نه زیات نفرت به درنه الله ﷻ کولو | چې تاسو به ایمان ته رابللې شوئ | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَتَکْفُرُوْنَ۝ | قَالُوْا | رَبَّنَآ | اَمَتَّنَا | اثْنَتَیْنِ |
| نو تاسو به انکار کولو | اوبه وائي هغوئ | اے ربه زمونږه | مړه کړو تا مونږه | دوه ځله |
| اوتاسو بۀ انکار کولو | ..........هغوئ به وائی چې ائې زمونږه ربه ! مونږ دې دوه ځله مړه کړو | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَحْیَیْتَنَا | اثْنَتَیْنِ | فَاعْتَرَفْنَا | بِذُنُوْبِنَا | فَهَلْ اِلٰی خُرُوْجٍ |
| او ژوندی کړو تامونږه | دوه ځله | پس اقرار کوو مونږه | دګناهونوخپلو | نوآیا شته ددې ځانې نه وتلو ته |
| اودوه ځله دې راژوندی کړو | نو اوس مونږ دخپلو ګناهونو اقرار اوکړو | | نوآیا اوس | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ سَبِیْلٍ۝ | ذٰلِکُمْ | بِاَنَّهٗ | اِذَا دُعِیَ | اللّٰهُ | وَحْدَهٗ |
| څه لار | دا حالت ستاسو | په سبب ددې دې | چې کله به غوښتلې کیدل خلق | الله ته | یوازې |
| (ددې عذاب نه دبچ) وتلو څه لار شته ؟ | دا ځکه(سزادر کولې شی) چې که صرف دالله نوم بۀ اخستې شو | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| کَفَرْتُمْ ۚ | وَاِنْ یُّشْرَكْ | بِهٖ | تُؤْمِنُوْا ؕ | فَالْحُکْمُ |
| نوانکار به کوئ تاسو | اوکه شریك به کړې شو څوك | دهغه سره | نوتاسوبه منلو | نواوس اختیاریا فیصله |
| نوتاسو بۀ ترې انکار کولو | اوکه څوک به ورسره شریکولې شو | | نوبیا به مومنله | نو اوس دادالله فیصله ده |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِلّٰهِ | الْعَلِیِّ الْکَبِیْرِ۝ | هُوَ الَّذِیْ | یُرِیْکُمْ | اٰیٰتِهٖ |
| الله لره ده | چې اوچت دې لوئ دې | هغه هغه ذات دې | چې ښائي تاسو ته | نښې خپلې |
| چې ډیر د اوچتې مرتبې خاوند دې | الله هغه ذات دې چې تاسو ته خپلې نښې ښائي | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَيُنَزِّلُ | لَكُم | مِّنَ السَّمَآءِ | رِزْقًا | وَمَا يَتَذَكَّرُ | إِلَّا مَن |
| او نازلوي | ستاسو دپاره | داسمان نه | رزق | اونهٔ قبلوي نصيحت | مگر هغه څوك |
| او پورته نه درته روزي رالیږي \| او نصیحت خو بس هغه څوک قبلوي چې الله ﷻ ته | | | | | |
| يُنِيبُ۝ | فَادْعُوا | اللَّهَ | مُخْلِصِينَ | لَهُ | الدِّينَ |
| چې رجوع کوي الله ته | نو را اوبلئ | الله | حال دا چې خالص کونکي يئ | هغه لره | ددين خپل |
| رجوع کوي\| نو تاسو په خالصه عقيده باندې الله ﷻ نه دعا کوئ \| ...............اگر که هغه په | | | | | |
| وَلَوْ كَرِهَ | الْكَافِرُونَ۝ | | | | |
| اگر که نهٔ خوښوي | کافران | | | | |
| کافرانو بده لگي \| | | | | | |

**قوله تعالى:: يُنَادَوْنَ لَمَقْتُ اللَّهِ أَكْبَرُ**

**دگناه‌گارانو د دوزخ په خواه کښې خراب حالت:** دقيامت په ورځ چه کله به کافران داوردکويانو په خواه کښې وي او دالله ﷻ عذابونه به په وي اوتول کيدونکي عذابونه به دهغوي مخکښې وي هغه وخت به پخپله دخپل نفس دښمنان شي. اوډيرسخت دښمنان به شي. څکه چه د خپل خراب عملونو په وجه باندې هغه دوزخ ته خې. دغه وخت به فرښتې هغوي ته په اوچت اوازسره وائي چه نن تاسوڅومره دخپل ځان نه خفه يې اوڅومره دښمني چه دستاسونن دخپل ځان سره ده اونن چه څومره تاسوخپل ځان ملامته کوئ د هغې نه زيات خراب تاسو دالله ﷻ په نزد په دنيا کښې وې چه تاسوته داسلام دايمان دعوت درکړې کيدو اوتاسوهغه نه منلو.

**د «اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ» مطلب::** ددې نه پس ايت د﴿كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللهِ﴾ په شان دې. سدي رحمه الله فرمائي دوى په دنيا کښې مړه کړې شول بيائې په قبرونوکښې ژوندي کړل اودسوال جواب نه پس مړې کړې شول اوبيا د قيامت په ورځ ژوندي کړى شو. ابن زيد رحمه الله فرمائي چه دادم عليه السلام دشانه دوعدې په ورځ ژوندي کړې شول بيادمورخيټه کښې ورکښې روح واچولې شوبيامړه شول اودقيامت په ورځ به بياژوندي شي. خو دا دواړه قولونه صحيح نه دي څکه چه درې مرګونه اودرې ژوندونه لازم راځي اوپه ايت کښې ددوو مرګونو اودوو ژوندونو ذکر راغلې دې. صحيح قول دابن مسعود رضي الله عنه ابن عباس رضي الله عنه اودهغوى دملګرو دې. (يعني دمورد خيټې نه پيداکيدل يوژوند اودقيامت په ورځ دويم ژونددېناد پيدا کيدونه مخکښې رومبې مرګ اوددنيا نه درخصتيد ومرګ، داده مرګونه اودوه ژوندونه مطلب دى.

**قوله تعالى:: فَهَلْ إِلَىٰ خُرُوجٍ مِّن سَبِيلٍ۝**

**دنياته د راتلو ناکامه غوښتنه:** مقصد دا دې چه په دغه ورځ به کافران د الله ﷻ نه د قيامت په ميدان کښې داطلب اوخواهش کوى اوس مونږ دې دنياته يوځل بيا اوليګه لکه چه ارشاد دې ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَا أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ﴾ (1) نوته به ګورې چه ګناهګاران خلق به خپل رب ته سرښکته وى اووائى به چه اې الله ﷻ مونږ اوليدل اومونږ واوريدل. اوس ته مونږ بيادنياته اولېږه نونيکئې به کوو اوايمان به راوړو خود دوى دا تمنا به نه شى قبلولې. بيا چه کله عذاب اوسزا دوزخ او د دې اور اووينى اود دوزخ غاړې له اورسولې شى نوبيابه دغه درخواست کوى اود اول ځل نه به نى زيات په زور سره کوى لکه چه د الله ﷻ ارشاد مبارك دې ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا لَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ

---

(1) ۳۲/السجدة:۱۲.

رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾(¹)افسوس چه تاليدل كله چه هغوى د دوزخ خواكې اودرولې شوى وى اووانى چه ارمان مونږ. يوځل بيا دنياته واپس كړې شونود خپل رب خبرې به دروغ نه ګنړو اوايماندار به شو بلكه دهغوى دپاره خوهغه ښكاره كړې شو چه دوې اول پټ كړې شوى وو.اوكه بالفرض دوى واپس هم اوګرځولې شى نودوى به بيا هم هغه كوى د كوم نه چه منع كړې دى. داخودى دروغژن. دې نه پس چه كله هغوى په دوزخ كښې واچولې شى اوعذاب شروع شى هغه وخت به نور هم په زوردار اوكلك انداز اوالفاظو كښې دغه آرزوګانې كوى هلته به په چغوصورو سره وانى ﴿رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا غَيْرَ الَّذِيْ كُنَّا نَعْمَلُ ؕ اَوَلَمْ نُعَمِّرْكُمْ مَّا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَآءَكُمُ النَّذِيْرُ ؕ فَذُوْقُوْا فَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ نَّصِيْرٍ﴾(²)اې زمونږ. پروردګاره مونږ. د دې ځاىٔ نه اوباسه مونږ. به نيك عملونه كوو د هغې خلاف به كوو تراوسه پورې چه موكړى دى.جواب به وركولې شى چه ولې مونږ. تاسو ته دومره عمر اومهلت نه وو دركړې كه چرې دوى نصيحت حاصلونكى وو نويقين به پرې كولې شو.بلكه مونږ. خوتاسو له خبردركونكې هم درليګلې وو اوس دخپلو كړو مزه واځلئ د ظالمان هيڅ څوك امدادى نشته. وانى به چه اې الله مونږ. د دې ځاىٔ نه اوباسه كه مونږ. بياهم هغه شان اوكړو نو مونږ. به ظالمان يو. الله ﷻ به فرمانى لرې شئى هم په دې كښې پراته اوسئى ماسره خبرې مه كوئى. په دې آيت كښې دې خلقو د خپل سوال نه وړاندې يوه مقدمه قايمولوسره په سوال كښې يوه مزيداره خبره كړې. اې الله ﷻ مونږ. مړه ووتامونږ. راژوندى كړوبيادې مړه كړوبيادې راژوندى كړو ته په هرهغه څيز باندې قادرئى كوم چه ته غوارې زمونږ. د خپلو ګناهونواقرار دې. يقيناً مونږ. په خپلوخانونو باندې ظلم اوزياتې كړې اوس د خلاصى څه صورت جوړكړې يعنى مونږ. دنياته بيا واپس كړه چه يقيناً ستا په طاقت كښې دى. مونږ. چه هلته لاړشونود خپلو اولنوعملونو خلاف به كوو اوس كه دې ځل بيا مونږ. هم هغه كار اوكړو نو مونږبه ظالمان يو. هغوى ته به جواب وركولې شى چه اوس بيا دنياته د تلو هيڅ لار نشته. د دې د پاره كه بيا لاړهم شئى نو هم هغه كارونه به كوئى د كوم نه چه منع كولې شئى. تاسو خپل زړونه كاږه كړى دى. تاسو اوس هم حق نه قبلوئى بلكه د دې به خلاف كوئى. ستاسو خوداحال وو چه كله هم د رب واحد ذكر راغلې ستاسو به زړه كښې كفر راغلې دې. او كه ده سره څوك شريك كولې شو نوستاسو يقين اوايمان راتلو.ستاسو به بيا هم هغه حالت شى.كه دنيا ته بيا لاړئى نو هم دغه به كوئى نوحاكم حقيقى د چا په حكم كښې چه هيڅ ظلم نه وى سراسر عدل اوانصاف وى هغه هم الله ﷻ دې. چاله چه غوارې هدايت وركړى اوچاله چه غوارې نه وركوى. په چاباندې چه غوارې رحم اوكړى څوك چه غوارې عذاب وركړى. د هغه په حكم او انصاف كښې څوك هم د هغه شريك نشته.

**قوله تعالى:: هُوَ الَّذِيْ يُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ**

**دالله ﷻ د قدرت دلائل** هغه الله ﷻ په خلقو باندې خپل قدرت ښكاره كوى په زمكه اوآسمان كښې د هغه دتوحيد بې شميره نښې دى د كوم نه چه صفا ښكاره معلوميږى چه د ټولوخالق دټولومالك د ټولو پالونكې اود ټولو حفاظت كونكې هم هغه دې هم هغه د آسمان نه رزق يعنى باران راوروى په كوم سره چه د هرقسم غلې فصلونه قسم قسم عجيبه عجيبه خوند اومختلف رنګ شكل اوصورت ميوې دانې اوګلونه پيداكيږى.سره د دې چه اوبه يو اوزمكه هم يوه. په دې سره هم د هغه شان ښكاره دې او ربنتيا خودا دى چه عبرت نصيحت فكر اوغور خو هم هغوى ته نصيب كيږى چه د الله ﷻ طرف ته رغبت او رجوع كونكى وى.اوس تاسو دعاعبادت په خلوص صرف د يوالله ﷻ د پاره كوئى د مشركانو د مذهب

(¹) ۶/الانعام:۲۷.
(²) ۳۵/فاطر:۳۷.اخ.

اومسلك نه جداشي. حضرت عبدالله بن زبير﷛ به د هر فرض مانځه د سلام ګرځولونه پس دا لوستل ﴿لااله الاالله وحده لاشريك له له الملك وله الحمد وهوعلى كل شئ قدير لاحول ولا قوة الابالله لااله الاالله لانعبدالا اياه له النعمة وله الفضل وله الثناء الحسن لااله الاالله مخلصين له الدين ولوكره الكفرون﴾ اوفرمائيل ني چه رسول الله ﷺ به هم دا د هر مانځه نه پس لوستل (مسنداحمد) داحديث په مسلم او ابوداؤدوغيره كښې هم شته[1] ابن ابي حاتم كښې دي د الله ﷻ نه دعااوكړئي اود قبليدو پوره يقين ساتئي اويادساتئي چه الله ﷻ بې پرواه دې اود بل طرف نه دمشغول زړه نه اوري. ([2])

رَفِيعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ ۚ

هغه داوچتو درجو مالك دې | مالك دعرش دې |

هغه دمرتبو اوچتونكي دې | دعرش مالک دې

يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ

نازلوي روح | په حكم خپل سره | په هغه چا | چې غواړي ني هغه || دبندګانو خپلو نه

هغه په خپلو بندګانو كښې چې په چا اوغواړي په هغه باندې خپله وحي راوليږي | چې (

لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴿١٥﴾ يَوْمَ هُمْ بٰرِزُوْنَ ۚ

دپاره ددې چې اويروي خلق | دورځې دملاقات نه | هغه ورځ | چې ټول خلق به بې ير دې وي

خلق) دملاقات (دحشر) د ورځې نه اوويريږي | په كومه ورځ چې به ټول خلق (دقبرونونه) بهر راوځي

لَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ ؕ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ؕ

نه به وي پټ | په الله باندې | ددوئ نه | هيڅ خيز | چالره ده بادشاهي | نن ورځ | الله لره ده

دالله ﷻ نه به ددوئ هيڅ خبره پټه نه وي | (تپوس به كولې شي) چې نن ورځ د چا بادشاهي ده؟

لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿١٦﴾ اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۭ

چې يو دې | قهار يعني زبردست دې | نن ورځ به | بدله وركړې كيږي | هر نفس ته

بس صرف دالله ﷻ بادشاهي ده| چې يو او غالب دې| نن به هر سړي ته دخپل عمل بدله وركولې شي

بِمَا كَسَبَتْ ؕ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿١٧﴾

دهغه عمل چې كړې وي هغه | نشته ظلم نن ورځ | بيشكه الله | زراغستونكي دې دحساب

(اوپه چاباندې به) نن هيڅ زياتي نشي كولې| يقينا الله ﷻ ډير زر حساب اخستونكي دې

**قوله تعالى:: رَفِيعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ**

**د قيامت په ورځ به د الله ﷻ بادشاهي وي:-** الله ﷻ خپله لوئي عظمت اود خپل عرش لوئي او وسعت بيان فرمائي چه په ټول مخلوق باندې لكه د چت خور دې. ارشاد باري ﷻ دې ﴿مِّنَ اللّٰهِ ذِي الْمَعَارِجِ﴾ ([3]) يعني

[1]) احمد:٤/٤، صحيح مسلم كتاب المساجد باب استحباب الذكر بعد الصلاة وبيان صفته:٥٩٤، ابوداؤد:١٥٠٦، ابن حبان:٢٠٠٨.

[2]) ترمذي كتاب الدعوات، باب نمبر٦٥، حديث:٣٤٧٩

[3]) ٧٠/المعارج:٣.

هغه عذاب به د الله ﷻ د طرف نه وی چه د پاوروخینو والا دې فرښتې او روح هغه له ورخیژی ورخی
به داسې ورځ کښې چه د هغې اندازه د پنځوسوزروکالوده اود دې خبرې بیان به ان شاء الله ورانديې
راځی چه فاصله د اوومې زمکې نه واخله ترعرش پورې ده(۱)لکه چه د سلفو اوخلفو د جماعت یو قول
دې او هم دا راجح هم دې ان شاء الله. د ډیرو مفسرینو نه روایت دې چه عرش د سرو یاقوتودې. دکومو
د دوو غاړو فاصله چه د پنځوسوکالوده اودکوم اوچتوالې چه داوومې زمکې نه پنځوس زره کاله
دې اود دې نه به وړومبی حدیث کښې چه د فرښتو د عرش اوچتول ذکر دی داهم تیرشوې دې چه
داووه واړواسمانونونه هغه ډیر اوچت اوبره دې هغه چه به چاباندې غواړی وحی رالیګی.لکه چه ارشاد
دې ﴿يُنَزِّلُ الْمَلَٰئِكَةَ بِالرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ أَنْ أَنْذِرُوا أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاتَّقُونِ﴾ (۲)هغه فرښتو ته وحی ورکوی
وحداله چه غواړی لیګی چه ته خلق خبرکړه زما نه بغیربل معبودنشته مانه ویریږئی. بل ځای ارشاد دې
﴿وَإِنَّهُ لَتَنْزِيلُ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ﴾(۳)یعنی داقرآن پاك د ټول جهان درب نازل کړې شوې دې کوم چه معتبر فرښتې
سپاره زړه کښې راکوزکړې دې دې د پاره چه ته ویرونکې جوړشې. دلته هم هغه بیان اوشو چه هغوی د
ملاقات د ورځې نه اوویروه(۴)حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه داهم د قیامت یونوم دې په کوم سره
چه الله ﷻ خپل بندیګان اوویرول. په کوم کښې چه به حضرت آدم عليه السلام پخپله اودهغه د اولاد نه د ټولو
نه آخری ماشوم یوبل سره ملاویږی. ابن زید رحمه الله فرمائی بندیګان به الله ﷻ سره ملاویږی. قتاده رحمه الله
فرمائی آسمانونووالا اوزمکې والا به یوبل سره ملاویږی. خالق اومخلوق ظالم اومظلوم به ملاویږی
مقصددا چه هریوبه بل سره ملاقات کوی بلکه عامل اودهغه عمل به هم ملاویږی. نن به ټول د الله ﷻ
په وړاندې وی په هغه ورځ به الله ﷻ پخپله فرمائی نن د چابادشاهی ده؟ څوك به چه صرف جواب
ورکړی؟ پخپله به الله ﷻ جواب ورکړی چه د هغه الله ﷻ چه د همیشه نه واحد اواحددې او په ټولو
باندې غالب حکمران دې. اول حدیث تیر شوې دې چه الله ﷻ به آسمان اوزمکه راغونډکړی او په خپل
لاس کښې به نی واخلی اوفرمائی به زه بادشاه یم زه جباریم زه متکبریم د زمکې بادشاهان جبار او
متکبران نن چرته دی؟ (۵)د صور په حدیث کښې دی چه الله ﷻ عزوجل کله د ټولومخلوق روح قبض
کړی اود هغه وحده لاشریك له نه بغیربل څوك پاتې نه شی. هغه وخت به درې ځل فرمائی نن ملك د چا
دې؟بیابه هم پخپله جواب ورکړی دالله ﷻ یوازې غالب یعنی دهغه چه واحددې.دهغه چه په هر یو څیز
باندې غالب دې د چا په ملکیت کښې چه هریوڅیزدې. ابن ابی حاتم کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه
روایت دې د قیامت د قایمیدوپه وخت کښې به یوآواز کونکې آوازکوی خلقو قیامت راغلوکوم چه به
مړی اوژوندی ټول اوری.الله ﷻ به د دنیاپه آسمان باندې په خپل شان سره نزول کوی اووائی په چه نن د
چا بادشاهی ده؟ صرف د الله ﷻ چه یودې اوغالب دې. بیا د الله ﷻ د عدل اوانصاف بیان کولې شی.
په هغه ورځ به لږشان هم ظلم نه شی کولې بلکه نیکئی به لس لس چنده زیاتې ملاویږی اوبدئی به هم
دومره وی دصحیح مسلم شریف حدیث دې رسول الله ﷺ د الله ﷻ ارشاد نقل کوی اې زما بندیګانوما
به خپل ځان باندې هم ظلم حرام کړی دې اوپه تاسو باندې مې هم حرام کړې دې نوپه تاسوکښې دې
څوك هم په بل باندې ظلم نه کوی. په آخره کښې دی اې زما بندیګانو داخوستاسو خپل اعمال دی کوم

---

(۱) صحیح مسلم کتاب الصلاة النبی صلی الله علیه وسلم ودعائه باللیل:۷۷۰، ابوداود : ۷٦۷، ابن ماجه: ۱۳۵۷، احمد:۱٥٦/٦، ابن حبان : ۲٦۰۰، نسائی: ۱٦۲٦،.

(۲) ۱٦/النحل:۲.

(۳) ۲٦/الشعراء:۱۹۲.

(۴) الطبری:۳٦٤/۲۱.

(۵) صحیح مسلم کتاب صفات المنافقین باب صفة القیامة والجنة والنار:۲۷۸۸.

ته چه زه ګورم اوتاسوله به پوره بدله درکوم. څوك چه نېكي اوكړي نو د الله ﷻ حمد دې بيانوي اوچه څوك دې نه علاوه وي نوهم خپل خان دې ملامته كړي(١)بياني خپل حساب اخستل بيان كړه چه د ټول مخلوق نه حساب اخستل هغه ته داسې دې لكه چه د يوكس نه حساب اخلي. لكه چه ارشاد بارى ﷻ دې ﴿مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ إِلَّا كَنَفْسٍ وَاحِدَةٍ ۗ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾(٢)يعنى د ټولوپيدا كول اوتاسو ټول مړه كولونه پس ژوندى كول زما په نيز هم ديوكس پيدا كول اوديوكس مړكولوبرابراويو شان دى.بل آيت كښې د الله ﷻ فرمان دې﴿وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ﴾(٣)يعنى زمونږ حكم سره كار كيږي په دومره ساعت كښې لكه چه چا ستر ګه بند كړه اوكولاوني كړه.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَنذِرْهُمْ | يَوْمَ الْآزِفَةِ | إِذِ الْقُلُوبُ | لَدَى الْحَنَاجِرِ | كَاظِمِينَ ۚ |
| اواويروه دوئ | دورخي نزدې نه | كله چې به زړونه | راختلي وى مرئ ته | غمژن به وى |
| اوډائي پيغمبره) دوئ د نزدې راتلونكي ورځې دمصيبت نه اوويروه \| چې زړونه به ترخولې شي | | | | |
| مَا لِلظَّالِمِينَ | مِنْ حَمِيمٍ | وَلَا شَفِيعٍ | يُطَاعُ ۞ | |
| نهٔ به وى دپاره دظالمانو | څوك خوږدوست | اونهٔ شفاعت كونكې | چې خبره اومنلې شى دهغه | |
| اوساګاني به لنډې شي\|اوپه دغه ورځ به دظالمانو دپاره هيڅ دوست نه وى \|اونه څوك سفارشي چې دهغه خبره | | | | |
| يَعْلَمُ | خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ | وَمَا | تُخْفِي الصُّدُورُ ۞ | وَاللَّهُ |
| پوهيږي الله تعالى | په خيانت د ستر ګو | او په هغه چې پټوى يې سينې | | او الله تعالى |
| واورى\| الله ﷻ د ستر ګو په غلا اود زړونو په پټو رازونو ښه پوهيږى \| ...................اوالله ﷻ به | | | | |
| يَقْضِي | بِالْحَقِّ ۖ | وَالَّذِينَ | يَدْعُونَ | مِن دُونِهِ |
| حكم (فيصله)كوى\|په حقه سره \| او هغه | | چې رابلي ئې دوئ\|بې دالله نه\|هغوئ فيصله نهٔ شى كولې | | |
| په انصاف سره فيصله اوكړى\|اودوئ چې دهغه نه سوا د نور چا بلنه كوى\| نوهغوئ هيڅ فيصله نه | | | | |
| بِشَيْءٍ ۗ | إِنَّ اللَّهَ | هُوَ السَّمِيعُ | الْبَصِيرُ ۞ | لَا يَقْضُونَ |
| دهيڅ خيز \| بيشكه الله چى دې \| هغه اوريدونكې دې \| ليدونكې دې \| | | | | |
| شى كولې \| بيشكه الله ﷻ هر څه وينى او ګورى\| | | | | |

**قوله تعالى:: وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْآزِفَةِ**

**د قيامت د سختو بيان او د ازفه مطلب:-** ﴿الْآزِفَةُ﴾ د قيامت يونوم دې. ځكه چه هغه ډيرنيزدې دې لكه چه ارشاد دې﴿ أَزِفَتِ الْآزِفَةُ ﴾(٤)الخ يعنى نيزدې راتلونكې رانيزدې شوې دې د كوم ښكاره كونكې چه

---

(١) صحيح مسلم كتاب البروالصلة باب تحريم الظلم:٢٥٧٧، ترمذى:٢٤٩٥،ابن ماجه:٤٢٥٧، احمد:١٦٠/٥، ابن حبان:٦١٩.
(٢) ٣١/لقمان:٢٨.
(٣) ٥٤/القمر: ٥٠.
(٤) ٥٣/النجم:٥٧.

بغیرد الله ﷻ نه بل څوك نشته. بل خاي ارشاد دي ﴿اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ الْقَمَرُ﴾(١). قیامت نیزدي راغلو او سپوږمئ اوشلیدله. بل ارشاد دي ﴿اقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُّعْرِضُونَ﴾(٢) د خلقو د حساب وخت نیزدي راغلو. بل ارشاد دي ﴿أَتَىٰ أَمْرُ اللَّهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ ۚ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾(٣) د الله ﷻ امر راغلي دی تاسو پدی کښې تندی مه کونی. یوبل آیت کښې دی ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ زُلْفَةً سِيئَتْ وُجُوهُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَقِيلَ هَٰذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تَدَّعُونَ﴾(٤) کله چه دانیزدي اوګوری نود کافرانو مخونه به تك تور شي.
غرض دا چه هم د دې نیزدیوالي په وجه دقیامت نوم ﴿أَزِفَةُ﴾ دي.هغه وخت به ایني خُلې له راشی هغه ویره به وی چه د چا زړه به په ځاۍ نه اودریږی په ټولو به د غضب خاموشي وی. د چا د خُلې نه به یوه خبره هم نه اوځی دڅاڅه مجال چه بغیر اجازت شوندې اوخوزوی.ټول به ژاړی اوحیران اوپریشان به وی.کوموخلقو چه الله ﷻ سره شرك کړې هغوی په خپل ځان ظلم کړې دې د هغوی به نن هیڅ غم خوار او دوست نه وی چه د هغوی په کارراشی. نه به شفاعت کونکې اونه سفارش کونکې به وی چه د هغوی د شفاعت د پاره ژبه اوخوزوی بلکه د هرې ښیګړې اسباب به پرې کړې شوې وی.

**قوله تعالى: يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ**

**د سترګوخیانت اود سینې راز** ::دهغه الله ﷻ علم محیط دې ټولې لونې وړې پټې ښکاره نرې اوغټې خبرې به یوشان ښکاره دی. د دومره لونی علم د مالك چه د هغه نه هیڅ یو څیز پټ نه وی هریوسړی له ویریدل پکاردی اوپه یووخت کښې هم دا خیال نه دی کول پکار چه دې وخت کښې هغه زما نه پټ دې اوزمادحال هغه ته خبر نشته بلکه هروخت دې دایقین کوی چه هغه ماته ګوری دهغه علم ماسره دې د دې لحاظ دې کوی اودهغه دمنع کړې شوی کارونونه دې منع شی.سترګې چه دخیانت دپاره اوچتیږی که به ظاهره باندې هغه امانت ښکاره کوی خود علیم رب نه هغه پټ نه دی.د سینې به کوم ګوټ کښې چه کوم یوخیال پټ وی اوپه زړه کښې چه کومه خبره به پټه سره راوچتیږی د هغې هغه ته علم دې
ابن عباس ﷺ فرمانی په دې آیت کښې مرادهغه سړې دې مثلاً چه یوکورته لاړو هلته یوه ښائسته ښځه ده یاهغه خې راځی اودې دسترګې په ګوټ کښې هغې ته ګوری راګوری کوم ځاۍ چه دچا نظر پریوځی نودې نظر اوګرځوی اوچه کله نې موقع اوموندله نوسترګې اوچتوی 'وګورې نودخیانت کونکې سترګې خیانت اود هغه د زړه راز الله ﷻ ته چه علیم رب دې ښه معلوم دې چه د هغه په زړه کښې خو دادی که ممکن وی نوچه پټ اندام نې هم اوګوری. حضرت ضحاك رحمه الله فرمانی دې نه مراد سترګه وهل اواشارې کول بغیرد کتونکې څیز کتل یا لیدلې څیز لیدونکې یا لیدونکې نالیدلې جوړوی. (٥)
حضرت ابن عباس ﷺ فرمانی نظرچه په کوم یونیت سره واچولې شی الله ﷻ ته ښکاره دې (٦) بیا په سینه کښې پټ خیال چه که موقعه ملاوشی اوطاقت نې وی نودې به د بدکارنی نه هم منع نه شی نو دا هم هغه پیژنی. سدی رحمه الله فرمانی چه د زړونود وسوسو نه هغه خبردې. هغه په انصاف سره حکم کونی قادردې چه د نیکنی بدله نیکه ورکړی اود بدنی سزا خرابه ورکړی. هغه اوریدونکې او لیدونکې دې.لکه چه ارشاد دې هغه بدی کونکوته د هغوی د کولوسزا اونیکانوته به دهغوی دنیکئی بدله

(١) ٥٤/القمر:١
(٢) ٢١/الانبياء:١.
(٣) ١٦/النحل:١.
(٤) ٦٧/الملك:٢٧.
(٥) الطبرى:٣٦٩/٢١.
(٦) الطبرى:٣٦٩/٢١.

ورکوي. کوم خلق چه دهغه نه بغیربل څوک رابلي که هغه بتان اوتصویرونه وي یاکه څه بل څه وي هغه دهیڅ څیز مالکان نه دي دهغوی حکومت نشته نوحکم اوفیصلې به څنګه کوي؟الله ﷻ د خپل مخلوق اقوال اوري د هغوی احوال ته ګوري. چاله چه غواړي لار ښائي چاله چه غواړي ګمراه کوي د هغه په دې کښې هم سراسر عدل اوانصاف دي.

أَوَلَمْ يَسِيرُوا

ایا اوګرزیدلي نهٔ دي دوی

ایا د ا خلق په زمکه کښې ګرځیدلي نه دي

فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ كَانُوا

په زمکه کښې | چې اوګوري | څرنګې وو | انجام | دهغه کسانو | چې ووه هغوی |

چې اوګوري چې ددوی نه وړاندې خلقو (چې دحق نه منکر وو) انجام څهٔ شو

مِن قَبْلِهِمْ كَانُوا هُمْ أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَآثَارًا

مخکښې دوئ نه | وو هغوی | زیات سخت | ددوی نه | په قوت کښې | او په نښو پرېښودو کښې

هغه ددوئ نه په قوت کښې او د زمکې په مخ په نښو پرېښودو کښې زیات وو |

فِي الْأَرْضِ فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ وَمَا كَانَ لَهُم

په زمکه کښې | پس اونیول هغوئ لره الله | په سبب د ګناهونو دهغوئ | او نهٔ وو | هغوئ لره |

نو الله ﷻ هغوی د خپلو ګناهونو په سبب راونیول | اوهیڅا دالله ﷻ د عذاب

مِّنَ اللَّهِ مِن وَاقٍ ﴿٢١﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانَت تَّأْتِيهِمْ

دالله نه | هیڅوک بچ کونکې | دا انجام شو | په سبب ددې چې هغوئ وو | چې راتلل به هغوئ ته |

نه بچ نه کړل | ..............دا حکه چې هغه ته به خپلو پیغمبرانو ښکاره نښې راوړلې

رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَكَفَرُوا فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ

رسولان دهغوئ | د واضحه حکمونو سره | پس هغوئ انکار اوکړو | پس راواونیول هغوئ الله |

خو هغوئ بهٔ ترې انکار کولو| ................... نو الله ﷻ راونیول

إِنَّهُ قَوِيٌّ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ

بیشکه هغه | زور رور دي | سخت عذاب ورکونکې دي | او بیشکه اولیږو مونږه | موسی |

یقینا هغه ډېر د طاقت خاوند دي | سخت عذاب ورکونکې دي | اومونږ موسی

بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿٢٣﴾ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَقَارُونَ

دنښو زمونږ سره | او دلیل ښکاره سره | فرعون ته | او هامان ته | او قارون ته |

دخپلو نښو او ښکاره دلیل سره اولیږلو (یعني مونږ دوئ) فرعون اوهامان او قارون ته(پیغام دحق سره اولیږلو)

فَقَالُوا سَاحِرٌ كَذَّابٌ ﴿٢٤﴾ فَلَمَّا جَاءَهُم بِالْحَقِّ

پس اووئیل هغوئ | جادوګر دي | دروغژن دي | پس هر کله چې | راغې هغه | هغوئ ته | دحق سره

نو هغوئ اووئیل چې دا جادو ګر دي غټ دروغژن دي|نو څه وخت چې موسی زمونږ دطرفنه حق راوړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ عِنْدِنَا | قَالُوا | اقْتُلُوٓا | اَبْنَآءَ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | |
| د طرفه زمونږ نه | نو اووئيل هغوئ | چې اووژنئ | خامن دهغه كسانو | چې ايمان ئې راوړى دى | |
| نو هغوئ اووئيل | چا چې ددۀ سره (په الله ﷻ باندې) ايمان راوړې دې | د هغوئ خامن قتل كړئ | | | |
| مَعَهٗ | وَاسْتَحْيُوْا | نِسَآءَهُمْ | وَمَا كَيْدُ | الْكٰفِرِيْنَ | اِلَّا |
| دهغه سره | او ژوندئ پريږدئ | ښځې دهغوئ | اونۀ دې تدبير | دكافرانو | مگر |
| اولونړه ئې ژوندئ پريږدئ | ..........او د كافرانو تدبير بې اثره لاړو | | | | |
| فِيْ ضَلٰلٍ | وَقَالَ فِرْعَوْنُ | ذَرُوْنِيْٓ | اَقْتُلْ مُوْسٰى | | |
| په گمراهئ كښې (يعنى بې اثره) | اووئيل فرعون | چې پريږدئ ما | چې اووژنم موسى | | |
| او فرعون اووئيل چې ما پريږدئ چې موسى ﷺ قتل كړم او ويا دې هغه خپل رب (مدد د پاره) | | | | | |
| وَلْيَدْعُ | رَبَّهٗ | اِنِّيْٓ اَخَافُ | اَنْ يُّبَدِّلَ | دِيْنَكُمْ | |
| او دې د رالوغواړى | رب خپل | بيشكه زۀ يريږم | چې بدل به كړى دې | دين ستاسو | |
| راوغواړى | زه په دې ويريږم چې ستاسو دين به بدل كړى | | | | |
| اَوْ اَنْ يُّظْهِرَ | فِي الْاَرْضِ | الْفَسَادَ | وَقَالَ | مُوْسٰٓى | اِنِّيْ عُذْتُ |
| يا به راپيوته كړى | په زمكه كښې | فساد | اواووئيل | موسى | بيشكه ما پناه اغستلى ده |
| اويا به په ملك كښې (بل څه) فساد پيدا كړى | موسى ﷺ اووئيل چې زه دخپل رب | | | | |
| بِرَبِّيْ | وَرَبِّكُمْ | مِّنْ كُلِّ مُتَكَبِّرٍ | لَّا يُؤْمِنُ | بِيَوْمِ الْحِسَابِ | |
| درب خپل سره | او درب ستاسو سره | دهر تكبر كوونكى نه | چې ايمان نۀ لرى | په ورځ دحساب | |
| او ستاسو درب پناه غواړم دهر متكبر نه | چې د حساب په ورځ يقين نه ساتى | | | | |

**قوله تعالى:: اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ**
**د نافرمانه قوم انجام:** الله ﷻ فرمانى اې نبى ﷺ آيا ستاد رسالت تكذيب كونكو كافرانوستا نه د وراندې رسولانوتكذيب كونكو كافرانودحالت كتنه اخواد پخواپه گرځيدو سره نه ده كړې؟ چه د هغوى نه زبات طاقتور قوى اوجثه دار وو. دچادمكانونواوعمارتونوكنډرې چه تراوسه پورې موجود دى چه هغوى سره ډيرغرور كښې وود هغوى نه په لوئ عمر كښې وو كله چه د هغوى دكفر او گناهونو په وجه په هغوى باندې د الله ﷻ عذاب راغلو نونه چاهغه اخواكړې شواونه په چاكښې د مقابله طاقت وواونه د دې نه د بچ كيدوڅه صورت راووتلو. په هغوى باندې د الله ﷻ د غضب راپريوتلو وجه دا شوه چه هغوى له هم د هغوى رسولانوواضحه اوصفا دليلونه اوروښانه حجتونه راوړلې راغلې ووسره د دې هغوى كفر اوكړود څه په وجه چه الله ﷻ هغوى هلاك كړل اود كافرانود پاره ئې د عبرت ذريعه جوړ كړل . الله ﷻ د پوره طاقت والاسخت نيولووالااوسخت عذاب والا دې.زمونږ دعاده چه هغه دې مونږله دخپلوټولو عذابونو نه خلاصې راكړى. (آمين)

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا**
**د موسى ﷺ د قتل فرعونى منصوبه:-** الله ﷻ خپل آخرى رسول ﷺ ته د تسلئ وركولود پاره د وراندينو رسولانو قصې بيانوى لكه څنگه چه آخر كار فتح اوكاميابى هم د هغوى سره وه دغه شان ته هم د دې

کافرانو نه هيڅ اندیښنه مه کوه. زما امداد تاسره دې. اخرکاربه هم ستا بهتري اواوچتوالې وي کله چه حضرت موسى بن عمران ﷺ واقعه ستا په وړاندې ده چه مونږ هغه په دلائلو اوثبوتونوسره د قبطیانو بادشاه فرعون طرف ته چه د مصر بادشاه وو اولیږلو اود هامان طرف ته چه د هغه وزیراعظم وو. اود قارون طرف ته چه په هغه زمانه کښې د ټولونه زيات دولت مندوو اود سوداګرو بادشاه به ګڼړلې شو. دې بدنصیبود الله ﷻ دا زبردست رسول دروغ اوګڼړلو د هغه سپکاوې اوکړواوصفاني اوونیل چه دا خوجادوګراودروغژن دې. هم دغه جواب د کافرانود طرف نه د وړاندینو امتونوانبیاء کرامو علیهم السلام ته ملاویدلو.

لکه ارشاددې ﴿ كَذَٰلِكَ مَآ أَتَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا قَالُواْ سَاحِرٌ أَوۡ مَجۡنُونٌ ﴾[1] الخ. يعنى دغه شان د دوى نه وړاندې هم چه څومره رسولان راغلى دى ټولوته د هغوى قوم هم داونیلى چه جادوګرياليونې. آيا هغوى په دې باندې څه په غونډه کښې اتفاق کړې وو؟ په اصل کښې دا ټول په ټول سرکش خلق دى. کله چه زمونږ رسول موسى ﷺ هغوى له حق راوړو اوپه خپل رسالت باندې ئې زبردست دليلونه قايم کړل نو هغه خلق رسولان تنګول اوهغوى ته تکلیفونه ورکول شروع کړه. فرعون حکم اوکړو چه په دې رسول باندې څوك ايمان راوړى اوهغوى کړه چه کوم هلکان وى هغه قتل کړنى اوکومې جینکئى وى هغه پريږدنى. دې نه وړاندې هم هغه داحکم جارى کړې ووخکه چه د هغه دا ويره وه چه چرته موسى ﷺ پیدانه شى. د دې د پاره چه د بنى اسرائیلو تعدادکم کړى اوهغوى کمزورې کړى او بې طاقته ئې کړى. اوممکن دى چه دواړه مصلحتونه ئې مخې ته وو اواوس د بیاحکم کولو توجونې هم دې طرف ته وه چه دا ډله مغلوب وى اود هغوى شمیرزیات نه شى خوار اوذلیل وى بلکه د هغوى خیال وى چه زمونږ د دې مصیبت ذريعه حضرت موسى ﷺ دې. بنى اسرائيلو حضرت موسى ﷺ ته ونیلې هم ووچه ستاد راتلونه وړاندې هم مونږ ته تکلیفونه راکولې شو اوستاسو د راتلونه پس هم مونږ تنګولې شو. هغوى جواب ورکړو تاسو تندى مه کوئى ممکن دى چه الله ﷻ ستاسو دښمن تباه کړى اوتاسو د زمکې خلیفه ګان جوړ کړې بیابه ګورو چه تاسو څنګه عمل کوئې؟

قوله تعالى: قَالُواْ ٱقۡتُلُوٓاْ أَبۡنَآءَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥ

د حضرت قتاده رحمه الله قول دې چه د فرعون داحکم په دويم خل وو. [2] الله ﷻ فرمائى چه د کافرانودا دهوکه اودهغوى دا پالیسى چه بنى اسرائیل فناشى بې فائدې اوفضول وه. د فرعون یوډير خراب قصد بیانولې شى چه هغه دموسى ﷺ دقتل کولواراده اوکړه اوخپل قوم ته ئې اوونیل چه زه موسى ﷺ قتل کوم ستاسوعادتونه اورسمونه به تاسونه هیرکړى اوپه زمکه کښې به یوفساد خورکړى. د دې د پاره په عربوکښې دامتل مشهور شو (صارفرعون مذكرًا)يعنى فرعون هم وعظ کونکې جوړشو. بعضې قراءتونو کښې په ځائ د (ان يظهر) (يظهر) دې. موسى ﷺ ته چه کله د فرعون دابده اراده معلومه شوه نو هغوى اوفرمائیل چه زه د هغه نه اود هغه په شان بدوخلقو نه دالله ﷻ پناه کښې راځم. اې زما مخاطب خلقو زه د خپل اوستاسو د رب په پناه کښې راځم د هريوهغه سړى نه د تکلیف رسولونه چه د حق نه کبرکونکې اود قیامت په ورځ باندې ایمان نه لرونکې وى. په حديث شريف کښې دى کله چه به رسول الله ﷺ ته د يوقوم نه خوف وو نودا دعا به ئې فرمائیله ﴿اللهم انانعوذبك من شرورهم ونَدرابك فى نحورهم﴾ اې الله د هغوى د بدئى نه مونږ ستا په پناه کښې راځو اومونږ تا د هغوى په مقابله کښې کوو. [3]

---

[1] ۵۱/الذريت:۵۲.

[2] الطبرى:۲۷۳/۲۱.

[3] ابوداؤد کتاب الوتر باب مايقول الرجل اذاخاف قوما:۱۵۳۷ حاکم:۱۴۲/۲ ،احمد:۴۱۴/۴، ابن حبان:۴۷۶۵

وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ ۖ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ اِيْمَانَهٗٓ اَتَقْتُلُوْنَ

او ووئيل | يو سړي مومن | دال فرعون نه | چې پټوونې | ايمان خپل | آيا تاسو وژنئ |

او د فرعون د قوم نه يو مومن اووئيل | چې خپل ايمان به ئې پټ ساتلو | آيا تاسو يو داسې

رَجُلًا اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّيَ اللّٰهُ وَقَدْ جَآءَكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ

يو سړي | چې وائي هغه | رب زما الله دې | او بيشكه راغلې دې تاسو ته | دواضحه نښو سره |

سړي وژنئ | چې هغه وائي چې زما رب الله ﷻ دې | او تاسو ته ستاسو د رب د طرفه په ښكاره دلائلو

مِنْ رَّبِّكُمْ ۭ وَاِنْ يَّكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهٗ ۚ وَاِنْ يَّكُ

د طرفه درب ستاسو نه | او كه وي هغه | دروغژن | نو په هغه دې | دروغ دهغه | او كه وي هغه |

سره راغلې دې | نو كه دې دروغژن وي | نو ددهٔ د دروغو وبال به هم په دهٔ پريوځي | او كه رښتينې

صَادِقًا يُّصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِيْ يَعِدُكُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

رښتينې | نو رسيږي به تاسو ته | خيني دهغه عذاب نه | چې يروي دې تاسو دهغې نه | بيشكه الله |

وي | نو د هغه عذاب نه به درباندې راشي اچې تاسو ترې يروي | بيشكه الله تعالى هغه چاته نيغه لار نه

لَا يَهْدِيْ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ ﴿٢٨﴾ يٰقَوْمِ لَكُمُ

نهٔ ښائي لار | هغه چاته | چې هغه دحدنه اوړيدونكې وي | دروغژن وي | اے قومه زما | تاسو لره ده

ښائي خوك چې د حدنه تيريدونكې اوغټ دروغژن وي | ............ ائي زما قومه

الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظٰهِرِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۡ فَمَنْ يَّنْصُرُنَا

بادشاهي | نن ورځ | چې غالب يئ | په زمكه كښې | پس څوك به امداد اوكړي زمونږ سره |

نن خو بادشاهي ستاسو ده | چې په دې ملك كښې حاكمان يئ | نو كه د الله ﷻ عذاب

مِنْۢ بَاْسِ اللّٰهِ اِنْ جَآءَنَا ۭ قَالَ فِرْعَوْنُ مَآ اُرِيْكُمْ اِلَّا مَآ

دعذاب دالله نه | كه راغې مونږ ته | اووئيل فرعون | نهٔ دركوم رائي زهٔ تاسو ته | مگر هغه

راشي اخوك به مونږ دالله ﷻ د عذاب نه بچ كړي ؟ | فرعون اووئيل زهٔ خو بس تاسو ته هغه رائې

اَرٰى وَمَآ اَهْدِيْكُمْ اِلَّا سَبِيْلَ الرَّشَادِ ﴿٢٩﴾

چې ښكاري ماته (مناسب) | اونهٔ كوم ښودنه تاسو ته | مگر دلارې صحيح |

دركوم | كومه چې ماته رښتيا ښكاري | او بله دا چې زهٔ تاسو ته دمصلحت نه ډكه لار ښايم

**قوله تعالى: اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ يَّقُوْلَ رَبِّيَ اللّٰهُ**

**د يو ناليدلي مومن مجاهدانه اقدام:** مشهوره خو هم دا ده چه هغه مؤمن قبطي وو اود فرعون د خاندان نه وو. بلكه سدى رحمه الله خوفرمائي چه د فرعون د تره ځوئ وو اوداهم ونيلې شوى دي چه هغه هم حضرت موسى عليه السلام سره خلاصې بيامونډلې وو. امام ابن جرير رحمه الله هم داقول خوښوى. بلكه د كومو خلقو چه دا ويناده چه دامؤمن هم اسرائيلى ووهغوى د دوى ترديد كړې اوفرمائيلي دي كه اسرائيلى وو نو نه به فرعون د هغه دومره په صبرسره نصيحت اوريدلو اونه به د حضرت موسى عليه السلام د قتل د ارادې نه منع

کیدلو بلکه هغه ته به نی تکلیف رسولو. د حضرت ابن عباس ؓ نه روایت دې چه د آل فرعون خو یو دا سړې ایماندار وو اوبل د فرعون ښځې ایمان راوړې وو دریم هغه سړی کوم چه حضرت موسی ؑ ته خبرورکړې وو چه د سردارانو مشوره ستاسود قتل کولوروانه ده. ده به خپل ایمان پټولوخو د موسی ؑ د قتل اوریدوسره چپ پاتې نه شو اوهم دغه په حقیقت کښې د ټولونه بهتر او غوره جهاد دې چه د ظالم بادشاه په وړاندې د حق کلمه اووائی لکه چه حدیث(1)کښې دی اود فرعون په وړاندې د دې نه لویه کلمه بله هیڅ نه وه. نوداسړې د ډیرې لوئ مرتبې مجاهدوو د چاد مقابله چه هیڅ مثال نه وو. البته په صحیح بخاری شریف کښې وغیره کښې یوه واقعه په څوروایتونوسره نقل ده د کومې محاصل چه دادې حضرت عروه بن زبیر ؒ د حضرت عبدالله بن عمروبن عاص ؓ نه یوځل تپوس اوکړوچه د ټولونه لوئ تکلیف رسول الله ﷺ ته دمشرکانونه څه رسیدلې دې؟هغوی اوفرمائیل واوره یوځل حضور ﷺ په کعبه شریفه کښې مونځ کولو چه عقبه بن ابی معیط راغلو حضور ﷺ نی اونیولو اوبه خپل څادرکښې نی ول واچولود حضور ﷺ په سټ مبارك کښې واچولو اوراښکلونی په څه سره چه د حضور ﷺ مرنی مبارکه خفه شوه. هم هغه وخت حضرت صدیق اکبر ؓ راغلو اوهغه له نی دیکه ورکړه اواخوانی اوغورزولو اوونی فرمائیل چه آیا ته داسې سړې قتل کول غواړې چه وائی زمارب الله ﷻ دې اوهغه تاسو له دلیلونه راوړلی دی راغلې دې(2)یوبل روایت کښې دی چه دقریشوګنړه راجمع وه کله چه حضور ﷺ په هغه ځائ تیریدلو نو دوئ تپوس اوکړو چې هم ته نی چه مونږ د خپل پلارانونیکونود معبودانود عبادت نه منع کوې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل او او هم زه یم. په دې باندې هغه ټول حضور ﷺ پورې اونختل اوکپړې ترې راښکلې حضرت ابوبکر ؓ راغلو حضور ﷺ نې خلاص کړو اود سترګونه نی اوښکې بهیدلې او په اوچت آواز سره نی دا اوفرمائیل اود پوره آیت ﴿أَتَقْتُلُونَ﴾ تلاوت نی اوکړو (3)
نودې مؤمن هم داااوونیل چه دده قصور صرف هم دومره دې چه دې خپل رب الله ﷻ ښانی اوداځه چه وانی په دې باندې سنداودلیل پیش کوی. ښه ده اومنئی چه فرض کړه دې دروغژن دې نود ده د دروغو نقصان به هم په ده وی الله سبحانه وﷻ به ده ته په دنیا اوآخرت کښې سزا ورکوی اوکه چرې دې رښتونې وی اوتاسو دې په تکلیف کړې وی نویقینًا په تاسوبه د الله ﷻ عذاب راځی لکه څنګه چه هغه وانی. نود عقل تقاضا دا ده چه تاسو دې پریږدنی څوك چه د هغه منی نومنی دې تاسو ولې د هغه ازار اخلنی. حضرت موسی ؑ هم د فرعون اوفرعونیانونه هم دغه غوښتل.
لکه چه آیت ﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَآءَهُمْ رَسُولٌ كَرِيمٌ ۝ أَنْ أَدُّوٓا۟ إِلَىَّ عِبَادَ ٱللَّهِ ۖ إِنِّى لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ۝ وَأَن لَّا تَعْلُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ ۖ إِنِّىٓ ءَاتِيكُم بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ۝ وَإِنِّى عُذْتُ بِرَبِّى وَرَبِّكُمْ أَن تَرْجُمُونِ ۝ وَإِن لَّمْ تُؤْمِنُوا۟ لِى فَٱعْتَزِلُونِ ۝﴾(4)دې یعنی مونږ د دوی نه اول د فرعون قوم ازمیښت کړو هغوی له مو عزت مندرسول راولیګلو هغه ونیل د الله ﷻ بندیګان ماته حواله کړه زه ستاسو طرف ته د رب نه رسول امین یم تاسود الله ﷻ نه بغاوت مه کونی ګورنی ما تاسو له کولاودلیلونه اوزبردست معجزې راوړی دی راغلې یم.تاسو به ماسنګسارکړنی نودې نه زه د الله ﷻ پناه غواړم.که تاسو په ماباندې ایمان نه راوړنی نوماپریږدنی. هم دارسول الله آخرزمان ﷺ خپل قوم ته فرمنیلې ووداالله ﷻ بندیګانوته د الله ﷻ د طرف نه مارابللوته پریږدنی. تاسو زما دتکلیف رسولونه منع شنی اوزمادخپلولنی خیال کولوسره ماته تکلیف مه راکونی.صلح حدیبیه په اصل کښې هم داځیز ووچه ښکاره فتح ورته وانی هغه مؤمن وانی چه واورنی اسراف کونکی اودروغژن سړی لارنه بیاموممی

---

(1) ابوداؤدکتاب الملاحم باب الامر والنهي:٤٣٤٤ وهوحسن، ترمذی:٢١٧٤، ابن ماجه:٤٠١١.
(2) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة المؤمن:٤٨١٥، احمد:٢٠٤/٢، ابن حبان:٦٥٦٧.
(3) السنن الکبری:١١٤٦٢ وسنده صحیح.
(4) ٤٤/الدخان:١٧-٢١.

هغوی سره د الله ﷻ امداد نه وی. د هغه اقوال او افعال ډیر زر د هغه خباثت ښکاره کوی. په خلاف د ده چه دانبی الله ﷺ داختلاف اواضطراب نه پاك دی په صحیح رښتوني او ښه لارباندي دی.د ژبې رښتوني او دعمل کلك دی. که دی د حد نه تیریدونکی او دروغژن وو نو په ده کښې به دا صداقت او دا ښکلي والي چرې هم نه وو. بیاقوم ته نصیحت کوی اوهغوی دالله ﷻ دعذاب نه ویروی. رونړو تاسو ته الله ﷻ د دې ملك بادشاهي درکړې ده ډیر عزت نی درکړی ستاسو حکم ئی جاری کړی دی د الله ﷻ په دې نعمت باندې تاسوله د هغه شکر کول پکاردی اود هغه رسولان رښتوني ګنړل پکاردی. بادسانتی که تاسو ناشکری اوکړه اود رسول طرف ته مو خراب نظر اوکړو نویقینا به د الله ﷻ عذاب په تاسو راځی.اوښائې هغه وخت به څوك راولئی چه ستاسو په امداد باندې اودریږی اود الله ﷻ عذابونه رامنع کړی یائی روستو کړی؟ دالښکرې سامانونه به هیڅ په کاررانه شی د فرعون نه خو بل څه معقول جواب جوړنه شو غلي شو او په قوم کښې خپله خیرخواهی خودل شروع کړه چه زه تاسو ته دهوکه نه درکوم کوم چه زماخیال دې اوزما په ذهن کښې دی هم هغه تاسو ته ښایم په حقیقت کښې داهم د هغه خیانت وو هغه ښه پوهیدلو چه موسی ﷺ د الله ﷻ رښتوني رسول دې. لکه چه ارشاددې﴿لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَآ أَنزَلَ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ بَصَآئِرَ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَٰفِرۡعَوۡنُ مَثۡبُورٗا﴾ (۱)یعنی حضرت موسی ﷺ اوفرمائیل چه اې فرعونه ته ښه پوهیږې چه داخاص عجائبات دآسمان اوزمکې پروردګار رالیګلې دی کوم چه د بصیرت ذرائع دی. یوبل آیت کښې دی ﴿ وَجَحَدُواْ بِهَا وَٱسۡتَيۡقَنَتۡهَآ أَنفُسُهُمۡ ظُلۡمٗا وَعُلُوّٗاۚ فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلۡمُفۡسِدِينَ﴾ (۲)یعنی هغوئ سره دزړه د یقین د ظلم اوزیاتی په وجه سره انکاراوکړو.دغه شان د هغه دا وینا هم سراسر غلطه وه چه زه تاسو ته دحق د رښتون ولئی او ښیګړې لارښایم.پدې کښې هغه خلقوته دهوکه ورکوله او رعایاسره ئی خیانت کولو.خودهغه قوم د هغه په دهوکه کښې راغلو اودفرعون خبره ئی اومنله. فرعون هغوی څه د ښیګړې په لار وانچول خکه چه دهغه کار خوتیك وونه. بل ځائ دالله ﷻ ارشاد دې فرعون خپل قوم دهوکه کړو اوهغوی ئی صحیح لارته رسیدو ته پرینخودل اونه ئی اورسول. رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم یوامام خپل رعایا سره د خیانت لویه کوی هغه چه مرشي نود جنت بوئی به هم نه بیا موسی سره د دې چه هغه خوشبو د پنځوسوو کالو په فاصله باندې راځی. (۳)
والله سبحانه و ﷻ الموفق للصواب.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ ٱلَّذِيٓ | ءَامَنَ | يَٰقَوۡمِ | إِنِّيٓ أَخَافُ | عَلَيۡكُم | |
| اواووئیل هغه سړی | چې ایمان ئې راوړې ووْ | اے قومه زما | بیشکه زه ویریږم | په تاسو باندې | |
| اوکوم سړی چې ایمان راوړې وو اهغه اووئیل چې ائې زما قومه ماسره ویره ده | | | | | چې د نورو |
| مِّثۡلَ | يَوۡمِ ٱلۡأَحۡزَابِ | مِثۡلَ دَأۡبِ | قَوۡمِ نُوحٖ | وَعَادٖ | وَثَمُودَ |
| په مثل دعذاب | دورځې دډلو | په مثل دحال | دقوم دنوح | او دعادیانو | او ثمودیانو |
| قومونو پشان به درباندې بده ورځ راشی | | پشان د نوح د قوم ......... اود عادیانو اود ثمودیانو اود | | | |
| وَٱلَّذِينَ | مِنۢ بَعۡدِهِمۡۚ | وَمَا ٱللَّهُ | يُرِيدُ | ظُلۡمٗا | |
| او دهغه کسانو | چې روستو دهغوئ نه ووْ | اونه دې الله | چې اراده لری | دظلم کولو | |
| هغو خلقو پشان چې د هغوی نه روسته وو | | او الله ﷻ خپلو بندګانو باندې د ذرې هومره ظلم | | | |

(۱) ۱۷/الاسراء: ۱۰۲.
(۲) ۲۷/النمل: ۱۴.
(۳) صحیح بخاری کتاب الاحکام باب من استرعی رعیة فلم ینصح: ۷۱۵۰، صحیح مسلم: ۱۴۲.

لِلْعِبَادِ ۝ وَيٰقَوْمِ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ ۝
دپاره دبندګانو خپلو | او اے قومه زما | بیشکه زه یریږم | په تاسو باندې | دورځې دچغونه |
کول نه غواړي | ...... ......اني زما قومه زه په تاسو باندې د چغو د ورځې نه ویریږم

يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ ۚ مَا لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ
هغه ورځ چې اوبه ګرځي تاسو | شاکونکی | نۀ به وی تاسو لره | دالله نه | څوك بچ کونکې |
په هغه ورځ چې تاسو به شا طرف ته تښتئ | دالله ﷻ د عذاب نه به مو څوک بچ کونکې نه وی

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ۝ وَلَقَدْ جَآءَكُمْ
او هغه څوك چې بې لارې نې کړې الله | پس نۀ وی | هغه لره څوك لاربنودونکې |اوراغلې ووه تاسو ته
او څوک چې الله ﷻ بې لارې کړی | نو هغه څوک په لاره کولې نشی | .......اود دې نه وړاندې

يُوْسُفُ مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا زِلْتُمْ فِيْ شَكٍّ
یوسف |مخکښې ددې نه | دواضحه نښنو سره | پس همیشه به وئ | تاسو په شك کښې |
تاسو ته یوسف ﷺ په ښکاره نښنو سره راغلې وو| نو تاسو ته چې هغه څه راوړي وو | تاسو همیش د

مِّمَّا جَآءَكُمْ بِهٖ ۗ حَتّٰٓى اِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ
دهغې نه چې هغه راوړې وۀ تاسو ته | تر دې پورې | کله چې | وفات شو هغه | نو اوونیل تاسو |
دهغې نه په شک کښې وئ| ...................تر دې چې هغه وفات شو| نو تاسو اوونیل

لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا ۗ كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ
هر ګز به نۀ رالیږی الله | روستو دهغه نه | بل رسول | همدارنګې | بې لارې کوی الله | هغه څوك
چې هیڅ کله به الله ﷻ بل پیغمبر راونه لیږی | دغه شان الله ﷻ د حد نه تیریدونکې

هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابُ ۝ ۨ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ
چې دحدنه اوړیدونکې وی|شك كونكې وی|بیشکه هغه کسان |چې جګړه کوی |په آیتونودالله کښې
شک کونکی خلق دهدایت نه محروم ساتی | کوم خلق چې دالله ﷻ په آیتونو کښې د څه دلیل نه بغیر

بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰىهُمْ ۗ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ
بغیر دڅه دلیل نه | چې راغلې وی هغوئ ته | دا طریقه ډیره دغصې ده | په نز دالله |
کوم چې هغوی ته راغلی وی جګړې کوی | ..........دا دالله ﷻ اودمومنانو

وَعِنْدَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۗ كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ قَلْبِ
او په نزد دهغه کسانو | چې ایمان نې راوړې دې | درانګې | مهروهی الله | په هر زړه باندې
په نیز ډیره دغصې خبره ده | دغه شان الله ﷻ د هر متکبر ظالم په زړه باندې مهر

| |
|---|
| مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ۝ |
| دمتکبر سرى ا |
| لګوى ا |

قوله تعالى:: وَقَالَ الَّذِيٓ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اِنِّيٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ

ذكامل مومن خبرې اترې :د دې مؤمن د نصيحت آخرى حصه بيانولې شي هغه اوفرمانيل ګوره كه تاد الله ﷻ درسول اونه منل اوپخپله سركشنى باندې كلك ولاړوې نوزه ويريږم چه د وړاندينو قومونو په شان دالله ﷻ عذاب په تاباندې راپرينوځى.د نوح ﷺ قوم عاديانوثموديانو ته اوګوره چه د پيغمبرانو د نه منلوپه نقصان كښې په هغوى باندې څنګه عذابونه راغله؟ اوهيڅ څوك هم نه وو چه هغه ئې اخوا كړي وې يائې منع كړې وې. په دې كښې دالله ﷻ هيڅ ظلم نه وو اودهغه ذات په بندګانو باندې د ظلم نه پاك دې. دهغوى خپل كړه ووچه د هغوى د خان دپاره وبال اونقصان جوړشو. ماته د قيامت په ورځ د عذابونوهم ويره ده چه د شړلو رابللوورځ ده. دصور په حديث كښې دى چه كله په زمكه كښې زلزله راشي اوبه شليږى نوخلق به اخواديخوا په ويره او پريشانتيا كښې وارخطا منډې وهى اويوبل ته به آوازونه كوى.دحضرت ضحاك رحمه الله قول دې چه داد هغه وخت ذكر دې چه كله دوزخ راوستلې شى او خلق دا اووينى ويريږى به او منډې به وهى اوفرښتې به هغوى د محشر ميدان ته واپس راولى. لكه چه د بارى ﷻ فرمان دې ﴿وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى اَرْجَآىِٕهَا ۭ وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَىِٕذٍ ثَمٰنِيَةٌ۝﴾([1])يعنى فرښتې به دهغې په غاړوباندې وى بل ارشاددې ﴿يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ فَانْفُذُوْا ۭ لَا تَنْفُذُوْنَ اِلَّا بِسُلْطٰنٍ۝﴾([2])يعنى اې انسانانواوپيريانوكه تاسو دآسمان اوزمكې د غاړونه د وتلو طاقت لرئى نو اوځئى تختئى خوداستاسود وس خبره نه ده. دحسن او ضحاك رحمهما الله په قراءت كښې ﴿يَوْمَ التَّنَادِّ﴾ په شدسره دې. اوداماخوذ دې (نَدَّالبعيرنه. كله چه اوښ لاړشى او سركشى كوى نودا لفظ ورته ونيلې شى. ونيلې شوى دى چه په كومه تله كښې به وزن تللې شى هلته به يوه فرښته وى د چا نيكئى چه زياتې شى نو هغه به په اوچت آوازسره چغه وهى وائى به فلانكې دفلانكى خوئ نيك بخت شو اود نن نه پس به په هغه باندې بدبختى نه راځى. اوكه د هغه نيكئى كمې شى نوهغه فرښته آواز لګوى چه فلانكې د فلانكى خوئ بدنصيب شو اوتباه بربادشو.قتاده رحمه الله فرمائى قيامت ته ﴿ يَوْمَ التَّنَادِ﴾ ځكه ونيلې شوې دى چه جنتيان به جنتيانوته اودوزخيان به دوزخيانوته آوازونه كوى اوبه اعمالوسره به ئې رابلى اودا هم ونيلې شوى دى چه وجه دا ده چه جنتيان به دوزخيانوته وائى زمونږ رب چه مونږ سره كومه وعده كړې وه مونږ هغه رښتونې اوموندله. تاسو اوښائې تاسوهم د خپل رب وعده رښتونې اوليده؟ هغوى به جواب وركړى چه او.دغه شان به دوزخيان جنتيانوته وائى چه مونږ له لږې شان اوبه راكړئى څه خومونږ ته راكړئى چه الله ﷻ تاسو ته دركړې دى. جنتيان به ورته جواب وركړى چه د دې ځاى خوراك څښاك په كافرانوباندې الله ﷻ حرام كړى دى. دغه شان په سورت اعراف كښې هم دابيان دې چه د اعراف والا به دوزخيانواوجنتيانوته وائى بغوى رحمه الله وغيره فرمائى چه داټولې خبرې دى اوهم ددې په وجه د قيامت د ورځې نوم ﴿التَّنَادِ﴾ دې. هم دا قول ډير ښكلې دې. والله اعلم.

---

[1] ۶۹/الحاقة:۱۷.

[2] ۵۵/الرحمن:۳۳.

**قوله تعالى: يَوْمَ تُوَلُّوْنَ مُدْبِرِيْنَ ۚ مَا**

**قيامت كښې به خلق د تيښتې كوشش كوي:** په هغه ورځ به خلق شاكړي منډې وهي خود تيختې ځه ځاى به نه وى اوورته به ونيلې شي چه نن د اودريدو ځاى هم دغه دې. په دغه ورځ به څوك نه وى چه بچ ئې كړي شي اود الله ﷻ د عذابونه ئې خلاص كړي. خبره دا ده چه دالله ﷻ نه بغيربل څوك قادرمطلق نشته چه هغه څوك ګمراه كړي نوهغه څوك په هدايت كولې نشي.دې نه وړاندې داهل مصردپاره يوسف ﷺ پيغمبر جوړشوي راغلې وو. د هغوى بعثت دموسى ﷺ نه اول شوې وو. عزيز مصر هم هغوى پخپله وو اوخپل امت به ئې الله ﷻ طرف ته رابللو خو قوم د هغه تابعدارى نه كوله اود دنياوى شان اوشوكت او وزارت په وجه به په ماتحتنى كښې پراته وو. نوفرماني چه تاسو د هغه د طرف نه د نبوت په شك كښې ئې آخرچه كله د هغه وفات اوشو نوتاسوبالكل نااميده شوئې او په طمع كولوسره مو ونيل چه اوس خوبه الله ﷻ څوك نبى نه جوړوي چه راوني ليګى.داوود هغوى كفر اودهغوى تكذيب. دغه شان الله ﷻ هغوى ګمراه كوى چه بې ځايه كارونه كونكى د حدنه تيريدونكى او په شك شبه كښې اخته شوې وى.كوم خلق چه حق د باطل نه اخواكوى اوبغيرددليل نه دليلونه اخواكوى په دې باندې الله ﷻ دهغوى نه خفه دې او سخت ناراض دې. دهغوى داكارونه چه يوطرف ته دالله ﷻ دخفګان وجه ده نوبل طرف ته د ايمانداروړ پاره هم د ناخوښئي ذريعه ده. په كوموخلقو چه داسې بې هوده صفتونه وى د هغوى په زړه باندې الله ﷻ مهرلګوى.د ځه نه پس چه نه هغوى ته نيكى ښه ښكارى اونه بدى بده ښكارى. هرهغه سړې چه د حق نه سركشى كونكې وى كبرژن اوغرور كونكې وى. حضرت شعبى رحمه الله فرمانى جبارهغه سړې دې چه دوه انسانان قتل كړى. د ابوعمران جونى او قتاده رحمهما الله فرمان دې كه چا بغيرد حق نه څوك قتل كړوهغه جباردې. والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالَ | فِرْعَوْنُ | يٰهَامٰنُ | ابْنِ لِيْ | صَرْحًا |
| او | دظالم سړى | اواوونيل فرعون | اے هامانه | جوړه كړه مالره | يوه مانړئ |
| اوفرعون اوونيل چې ائې هامانه! مادپاره يوه اوچته مانړئ جوړه كړه | شايد چې زه | | | |
| لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ | الْاَسْبَابَ ۙ | اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ | فَاَطَّلِعَ | |
| دپاره ددې چې اورسيږم زهٔ | لارو ته | لارو د آسمانونو ته | پس چې اووينم زهٔ | |
| په دې باندې په ختلو سره هغه لاروته اورسم | چې دآسمان دلارو سره (ملاويږى) | بيا د | | |
| اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى | وَاِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ | كَاذِبًا ؕ | وَكَذٰلِكَ | زُيِّنَ |
| خدائې دموسى | او بيشكه زهٔ ګمان كوم په هغه | دروغژن | او درانګې | ښائيسته ښكاره كړې شوه |
| موسى ﷺ الله ﷻ لره اووينم | اوزه خو موسى ﷺ دروغژن ګنړم | اودغه شان فرعون ته خپل | | |
| لِفِرْعَوْنَ | سُوْٓءُ عَمَلِهٖ | وَصُدَّ | عَنِ السَّبِيْلِ ؕ | وَمَا كَيْدُ | فِرْعَوْنَ |
| فرعون ته | بدى دعمل دهغه | او منع كړې شو | دنيغې لارې نه | اونهٔ وو تدبيرونه | دفرعون |
| بدكارونه ښائسته ښكاريدل | اودنيغې لارې نه محرومه وو | ...... اود فرعون هر يو تدبيرناكامه شو | | |
| اِلَّا | فِيْ تَبَابٍ ۧ | | | |
| مګر وو | په لار دتباهئ دهغه كښى | | | |

**قوله تعالی:** وَقَالَ فِرۡعَوۡنُ يٰهَامٰنُ ابۡنِ لِيۡ صَرۡحًا
**د فرعون مکر او فریب:**-دفرعون سرکشی اوتکبربیانولې شي چه هغه خپل وزیرهامان ته اوونیل زما د پاره یو ډیراوچت محل جوړکړه. دخښتو چونې یوپوخ او ډیراوچت محل جوړکړه.لکه چه بل ځای دی هغه اوونیل اې هامان خښتې پخې کړه اوزماد پاره یواوچت محل جوړکړه. دابراهیم نخعی رحمه الله قول دې قبر پوخ جوړول او په هغې باندې چونې کول به سلفو صالحینو مکروه ګڼړل (ابن ابی حاتم) فرعون به ونیل چه دامحل زه خکه جوړوم چه دآسمان دروازو اود آسمان لاروته زه اورسم اود موسی علیه السلام رب اووینم سره د دې چه ماته پته ده موسی علیه السلام دروغژن دې (نعوذبالله) اوداخه چه وائی چه دا رب رالیګلې دی دابالکل غلط دی.
په اصل کښې دا د فرعون یومکر او دهوکه وه اوهغه په خپل رعایاباندې دا ښکاره کوله چه ګورنی زه به داسې کار اوکړم چه په هغې سره به د موسی علیه السلام دروغ ښکاره شي. اوزما په شان به تاسو ته هم یقین پیداشی چه موسی غلطه ویناکونکې د خان نه خبرې کونکې اوکذاب دې فرعون د الله ﷻ د لارې نه رامنع کړې شو د هغه هریوتدبیراولته شو اوچه کوم یوکار هغه کوی هغه د ده د پاره د نقصان جوړیږی اوپه خساره کښې زیاتیږی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقَالَ الَّذِيۡ | اٰمَنَ | يٰقَوۡمِ | |
| او اوونیل هغه سړی | چې ایمان ئې راوړې وو | اے قومه زما | |

اوکوم سړی چې ایمان راوړې وو اهغه اوونیل چې ائې زما قومه:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اتَّبِعُوۡنِ | اَهۡدِكُمۡ | سَبِيۡلَ | الرَّشَادِ ۚ | يٰقَوۡمِ | اِنَّمَا |
| پیروی اوکړئ زما | زه ښایم تاسو ته | لاره | دهدایت (نیکئ) | اے قومه زما | بیشکه |

تاسو زما په لار روان شئ | زه به تاسوته دنیکئ لاره اوښایم | ..........ائې زما قومه!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| هٰذِهِ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا | مَتَاعٌ | وَّاِنَّ الۡاٰخِرَةَ | هِيَ دَارُ الۡقَرَارِ ۝ | |
| دا ژوند ددنیا | لږه نفعه ده | او بیشکه آخرت | هم هغه دې کور دقرارئ | |

دادنیا ژوند خو صرف د یو څو ورځو فائدې دی | اود اوسیدو اصلی ځائې خو آخرت دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مَنۡ عَمِلَ | سَيِّئَةً | فَلَا يُجۡزٰۤى | اِلَّا | مِثۡلَهَا ۚ |
| چاچې چې عمل اوکړو | بد | پس بدله به نۀ ورکړې کیږی هغه ته | مګر | برابرئ دهغې |

چا چې ګناه اوکړه | نو هغه ته به دهغه د عمل پوره سزا ورکولې شی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنۡ عَمِلَ | صَالِحًا | مِّنۡ ذَكَرٍ | اَوۡ اُنۡثٰى | وَهُوَ مُؤۡمِنٌ | |
| او چاچې عمل اوکړو | نیك | دنارینو نه | یا دزنانونه | حال دا چې هغه مومن وی | |

اوچا چې نیک عمل اوکړو | که سړې وی اوکه ښځه | او هغه مومن هم وی | .......

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاُولٰۤئِكَ | يَدۡخُلُوۡنَ الۡجَنَّةَ | يُرۡزَقُوۡنَ | فِيۡهَا | بِغَيۡرِ حِسَابٍ ۝ |
| پس دغه کسان | به داخلیږی جنت ته | رزق به ورکړې کیږی | په هغې کښې | بې حسابه |

نوهغه کسان به جنت ته داخلیږی | او هلته به هغوئ ته بې حسابه رزق ورکولې شی

وَيٰقَوْمِ مَا لِيْٓ اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ وَتَدْعُوْنَنِيْٓ
او اے قومه زما | څه دي ماله | چې زه رابلم تاسو | خلاصي ته | او تاسو رابلئ ما |
او وې ونیل چې ائې زما قومه دا څه چل دې چې زه خو تاسو دنجات طرفته رابلم | او تاسو مې
اِلَى النَّارِ تَدْعُوْنَنِيْ لِاَكْفُرَ بِاللّٰهِ وَاُشْرِكَ بِهٖ
وور ته | تاسو رابلئ ما | چې زه كفر اوكړم | دالله سره | او شريك جوړ كړم | دهغه سره |
دوزخ ته رابلئ |تاسوخومادې خبرې ته رابلئ |چې دالله ﷻ نه انكاراوكړم|اوداسې څيزورسره شريك كړم
مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ وَّاَنَا اَدْعُوْكُمْ اِلَى الْعَزِيْزِ الْغَفَّارِ
چې نشته ماله | په هغې | هيڅ علم | او زه رابلم تاسو | غالب بښونكي خدائي ته |
چې ماسره د هغې په باره كښې هيڅ دليل نشته | او زه تاسو دغالب او بښونكي الله ﷻ طرفته رابلم
لَا جَرَمَ اَنَّمَا تَدْعُوْنَنِيْٓ اِلَيْهِ لَيْسَ لَهٗ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا
حقه خبره داده | چې بيشكه | چه تاسو رابلئ ما | دچا طرفته | نو نشته | هغه لره | بلنه | په دنيا كښې
دامنلې خبره ده | چې تاسوما كوم څيز ته رابلئ | هغه نه په دنيا كښې د بلنې لائق دې | اونه په آخرت
وَلَا فِي الْاٰخِرَةِ وَاَنَّ مَرَدَّنَآ اِلَى اللّٰهِ وَاَنَّ الْمُسْرِفِيْنَ
اونه په آخرت كښې | او بيشكه واپس تلل زمونږه | الله ته دي | او بيشكه دحدنه اوړېدونكي خلق |
كښې د بلنې لائق دې |اومونږ ټول به الله ﷻ طرف ته واپس كيږو | او د حد نه وړاندې تېريدونكي ټول
هُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ فَسَتَذْكُرُوْنَ مَآ اَقُوْلُ لَكُمْ وَاُفَوِّضُ
هغوئ خاوندان دوور دي | پس زر ده چې ياد كړئ تاسو | هغه چې زه وايم تاسو ته | او حواله كوم زه
دوزخيان دي | ..........نو هغه وخت لرې نه دې چې زما خبرې به رايادوئ | او زه خپله معامله
اَمْرِيْٓ اِلَى اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ فَوَقٰىهُ اللّٰهُ
كار خپل | الله ته | بيشكه الله|نظر ساتونكې دې |په بندګانو خپلو باندې|پس بچ كړوهغه لره الله
الله ﷻ ته سپارم | بيشكه الله ﷻ خپل بندګان وينې ګورې | ........ ..نو الله ﷻ هغه مومن،
سَيِّاٰتِ مَا مَكَرُوْا وَحَاقَ بِاٰلِ فِرْعَوْنَ
دخرابو تدبيرونونه | هغه | چې كړې وو هغوئ | او چاپيره شوه | دال فرعون نه |
ددوئ دمكرونو فريبونو نه بچ اوساتلو | ....................اوپه فرعونيانو باندې خراب عذاب
سُوْٓءُ الْعَذَابِ اَلنَّارُ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا غُدُوًّا
سختي دعذاب يعنى سخت عذاب | وور دې | چې وړاند كړې كيږي به | هغې ته | صبا
راغلو | ........ هغه صبا او ماښام دوزخ ته وړاندې كولې شي |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَّعَشِيًّا | وَيَوْمَ تَقُوْمُ | السَّاعَةُ | اُدْخِلُوْٓا | اٰلَ فِرْعَوْنَ | |
| او بيگاه | او په كومه ورځ | چې قائم شي قيامت | (حكم به اوشي) چې ننباسئ | ال دفرعون | |
| او په كومه ورځ چې قيامت قائم شي (نوحكم به اوشي چې) دفرعون ملګري | | | | | |
| اَشَدَّ الْعَذَابِ۝ | | | | | |
| سخت عذاب ته | | | | | |
| سخت عذاب ته داخل كړئ | | | | | |

**قوله تعالى:: وَقَالَ الَّذِيْٓ اٰمَنَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوْنِ اَهْدِكُمْ سَبِيْلَ الرَّشَادِ۝**

**د ناپيژندګلومن دويم نصيحت:**-د فرعون د قوم مؤمن سړي د كوم ذكر چه اول تيرشوي دي د خپل قوم سركشه خان ته خوښو كبرژنوته نصيحت كولوسره وائي تاسو زما اومنئ زما په لار روان شئ تاسو به په نيغه لار واچوم. دې په خپله وينا كښې لكه دفرعون دروغژن نه وو.هغه خو خپل قوم ته دهوكه وركوله اوده خود هغوی حقيقي ښيګړه كوله.بياهغوی ددنيانه بې رغبت كولواودآخرت طرف ته متوجه كولوديارہ وائي دنيادېوختميدونكي سوري په شان اوفناكيدونكې يوه فائده ده.نه ختميدونكې اود هميشه والي ځائ خودې نه پس راتلونكې آخرت دې د كوم ځائ راحت اوزحمت چه د هميشه د پاره او غيرفاني دي. كوم ځائ چه د بدو بدله هم د هغې برابره وركولې شي اود نيكو بدله بې حسابه وركولې شي د نيكوكونكې كه سړې وي كه ښځه اوشرط دا دې چه ايماندار وي هغه ته به د دغه نيكئ ثواب دومره وركولې شي چه بې حده اوبې حسابه به وي.والله اعلم.

**قوله تعالى:: وَيٰقَوْمِ مَالِيْٓ اَدْعُوْكُمْ اِلَى النَّجٰوةِ**

**مشركانوته د توحيد دعوت:**- د فرعون د قوم مؤمن سړي خپل وعظ جاري ساتلوسره اووئيل چه داڅه خبره ده چه زه تاسو دتوحيد طرف ته يعني د يوالله وحده لاشريك له د عبادت طرف ته راغوارم اوزه تاسوته دالله ﷻ درسول دتصديق دعوت دركوم تاسو مادكفر اوشرك طرف ته راغواړئ.تاسووائئ چه زه جاهل جوړشم اوبغيرد دليل نه د الله ﷻ اودهغه د رسول خلاف اوكړم. غوراوكړئ چه ستاسو اوزما په دعوت كښې څومره فرق دې. زه تاسو د هغه الله ﷻ طرف ته بوځم چه د ډير عزت او لوئي خاوندې. سره د دې هغه د هرهغه سړي توبه قبلوی چه د هغه طرف ته ټيټ شي اواستغفاراوكړي ﴿لاجرم﴾ معنى دحق اوصداقت ده يعني دا يقين حق اوربنتيادې د كوم طرف ته چه تاسو مارابلئ يعني د بتانو او بغير د الله ﷻ نه د نورو عبادت ته هغه دی چه هغوی ته د دين او دنياهيڅ اختيارنشته. د كومو چه په نفع اونقصان باندې هيڅ طاقت نشته چه د خپل آواز كونكى آواز نه شي اوريدې نه ئې قبلولې شي نه دلته اونه هلته. لكه چه د الله ﷻ ارشاد دې ﴿ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗٓ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَآئِهِمْ غٰفِلُوْنَ۝ ﴾[1]يعنى ددې نه لوئ څوك ګمراه نشته چه دالله ﷻ نه بغيرنوروته چغې وهي اودهغه چغې ترقيامته پورې نه شي اوريدې. چاته چه دسرنه پته هم نه وي چه څوك مونږ ته چغې وهي اود قيامت په ورځ به دخپل چغې وهونكى دښمنان جوړيږي اود هغوی د عبادت نه به بالكل انكاركوي. سره د دې كه ته هغوی ته چغې وهه هغوی نه اوري اوفرض كړه كه واوري هم نو قبلولې نه شي. د آل فرعون مؤمن سړي وائي چه مونږ ټول به واپس الله ﷻ له خو هلته به هريوته د خپل عمل بدله ملاويږي. هلته د حدنه تيريدونكى الله ﷻ سره نور شريكان پيداكونكى هميشه په دوزخ كښې داخليږي. تاسو په دې وخت كښې زما د خبرو قدر مه كوئ خو هم اوس اوس به تاسو ته معلومه شي اوزما د خبرو

[1]) ۴۶/الاحقاف:۵.

صداقت اوحقیقت به په تاسو واضحه شي. هغه وخت به پښیمانتیا ارمان او افسوس کوني خوهغه به صرف بې فائدې وي. زه خو خپل کارد الله ﷻ په حواله کوم زما توکل هم په هغه دې. زه په خپل هر کار کښې هم د هغه نه امدادغوارم. زماتاسو سره هیڅ واسطه نشته زه تاسو نه جدا یم اوستاسو د کارونو نفرت کوم زما اوستاسو هیڅ تعلق نشته. الله ﷻ د خپلو بندیګانو په ټولوحالات باندې خبر او پوهه دې.دهدایت چه څوك مستحق دې هغه ته لارخودنه کوي اود ضلالت اوګمراهئ مستحق د دغه لار خودنې نه محروم پاتې کیږي. د هغه هریوکار د حکمت دې د هغه هریوتدبیرد ښیګړې دې. دامؤمن الله ﷻ دفرعونیانود مکر اودهوکې نه بچ کړو اوپه دنیاکښې هم په حفاظت سره پاتې شو یعنی موسی ﷺ سره هغه خلاصې بیاموندلو اودآخرت دعذابونونه هم محفوظ پاتې شو.باقي ټول فرعونیان په سخت خراب عذاب کښې راګیرکړې شو. ټول په دریاب کښې ډوب کړې شو اوبیاد هغه ځائ نه دوزخ ته اورسولې شو.

**د برزخ اوقبرعذاب:-** هرسحر اوماښام د هغوی روحونه د دوزخ مخې ته راوستې شی د قیامته پورې به داعذاب هغوی ته ورکولې شی اود قیامت په ورځ به دهغوی بدونونه دروح سره په دوزخ کښې غورزولې شی اوپه هغه ورځ به هغوی ته وئیلې شی چه اې آل فرعون سخت دردناك او ډیر زیات تکلیف ورکونکی عذابونو له ځئ.داآیت د اهل سنت دهغه مذهب چه عالم برزخ کښې یعنی قبر کښې عذاب کیږي ډیرلوئ دلیل دې. اودلته داخبره یادساتل پکاردی چه په بعضې احادیثوکښې څه دا مضمونونه هم نقل شوي دي چه دهغې نه معلومیږي چه دقبر عذاب رسول الله ﷺ ته د مدینې د هجرت نه پس معلوم شوې دې اودا آیت په مکه معظمه کښې نازل شوې دې نود دې جواب دا دې چه د آیت نه صرف دومره معلومیږي چه دمشرکانو روحونه به سحر او ماښام دوزخ ته مخې ته پیش کولې شی باقي پاتې شوه داخبره چه دا عذاب به هروخت جاري اوباقي وي که نه؟ او داهم چه داعذاب به صرف روح ته ورکولې شی که بدن ته هم؟ د دې علم الله ﷻ رسول الله ﷺ ته د مدینې تشریف راوړلو سره ورکړې شو اوحضورﷺ دا بیان اوفرمائیلو. نود حدیث اوقرآن په ملاوولوسره مسئله داشوه چه عذاب اوثواب د قبر روح اوبدن دواړوته کیږي اوهم دغه حق دې. اوس هغه احادیث اوګورئ. مسند احمد کښې دی چه یوه یهودنړه ښځه د حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها خدمت کولو. حضرت عائشه رضي الله عنها چه به کله هم هغې سره څه ښه سلوك کولو نوهغې به دعاکوله چه الله ﷻ دې تاد قبر دعذاب نه بچ کړي. یوه ورځ حضرت عائشه رضي الله عنها درسول الله ﷺ نه تپوس اوکړویارسول الله ﷺ دقیامت نه وړاندې په قبرکښې عذاب کیږي؟ حضورﷺ اوفرمائیل چه تاته دا چا اووئیل؟ حضرت عائشه رضي الله عنها دهغه یهودنړې ښځې واقعه بیان کړه نوحضورﷺ اوفرمائیل یهودیان دروغژن دی اوهغوی خوپه الله ﷻ باندې د دې نه زیات دروغ تړي. د قیامت نه وړاندې هیڅ عذاب نشته. لږې ورځې تیرې نه وې چه رسول الله یوځل دماسپښین په وخت کښې څادر اچولې تشریف راوړو سترګې مبارکې ئې سرې وې په اوچت آواز ئې فرمائیل قبر په شان د تورې شپې دتیارو د ټکړو دې.خلقو که تاسو ته هغه معلوم شی کوم چه زه پیژنم نوډیر زیات به مو ژړل اوډیرکم به موخندل. خلقو د قبردعذاب نه دالله ﷻ پناه غواړئ یقین اومنئ چه د قبر عذاب حق دې.

([1]) یوبل روایت کښې دی یوې یهودنړې ښځې دعائشه رضي الله عنها نه څه اوغوښتل دې ورکړه او هغې ورته هغه دعااوکړه د دې په آخره کښې دی چه د دې نه یوڅو ورځې پس حضورﷺ اوفرمائیل چه ماته وحی اوکړې شوه چه ستاسو ازمیښت په قبرونوکښې کیږي. ([2])نوپه دې آیاتونواودې حدیث کښې یوتطبیق خو هغه دې کوم چه پورته بیان شوې دې اودویم تطبیق داهم کیدې شی چه آیت ﴿یعرضون﴾ نه صرف

---

[1]) احمد:٦/٨١وسنده صحیح.

[2]) احمد:٦/٢٣٨.

دومره ثابت وی چه کافرانوته په عالم برزخ کښې عذاب کیږی خو په دې سره دانه لازمیږی چه مؤمن ته هم دهغه دبعضې گناهونوپه وجه د هغه په قبر کښې عذاب کولې شی. داصرف په حدیث سره ثابته ده.
مسنداحمد کښې دی یوه ورځ رسول الله ﷺ عائشه رضي الله عنها کره تشریف راوړو هغه وخت یوه یهودنړه ښځه مور بی بی سره ناسته وه اوونیلې چه تاته معلومه ده تاسو خلق به په خپلو قبرونوکښې ازمیښت کولې شئ؟ دې اوریدو سره حضور ﷺ اورچیدلو او وئ فرمائیل هم یهودیان ازمیښت کولې شی بیایوڅو ورځې پس حضور ﷺ اوفرمائیل خلقو تاسو ټول به د قبرونویه امتحان کښې اچولې شئ. دې نه پس به حضور ﷺ دقبر دامتحان نه پناه غوښتله.(١) داهم کیدې شی چه د آیات نه صرف د روح د عذاب ثبوت کیدلواودې نه بدن پورې د عذاب رسیدلو ثبوت نه وو. روستو د وحی په ذریعه حضور ﷺ ته دا معلومه کړې شوه چه عذاب قبر بدن اوروح ته کیږی.حضور ﷺ بیاددې نه دبچ کیدودعاشروع کړه. والله سبحانه وتعالى اعلم.
صحیح بخاری شریف کښې دی چه حضرت عائشه رضي الله عنها سره یوه یهودنړه ښځه وه هغې وئیل د قبرد عذاب نه مونږ د الله ﷻ پناه غواړو. په دې باندې عائشه بی بی رضي الله عنها د حضور ﷺ نه تپوس اوکړو چه په قبرکښې عذاب کیږی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل اوعذاب قبر حق دې. فرمائی چه دې نه پس ما اوکتل چه حضور ﷺ به دهرمانځه نه پس دقبرد عذاب نه پناه غوښتله(٢) د دې حدیث نه خوثابتیږی چه د حضور ﷺ به دې اوریدوباندې د یهودنړې ښځې تصدیق اوکړو اود پورته احادیثونه معلومیږی چه حضور ﷺ انکاراوفرمائیلونویه دواړو کښې تطبیق دادې چه دادوه واقعې دی. د اولې واقعې په وخت کښې حضور ﷺ ته د وحی په ذریعه نه وه معلومه شوې نوانکارئې اوفرمائیلو بیا معلومه شوه نوحضور ﷺ اقراراوکړ.والله سبحانه ﷻ اعلم. د قبر د عذاب ذکر په ډیرو احادیثوکښې راغلې دې. حضرت قتاده رحمه الله فرمائی د ټول عمر دپاره هرسحراوماښام د فرعونیانو روحونه د دوزخ مخې ته راوړې شی اوهغوی ته وئیلې شی بدکارانوستاسو اصلي ځائ هم دادې.دې دپاره چه د هغوی په غم دردکښې زیاتوالې وی اود هغوی ذلت او سپکاوې وی. (٣)نو نن هم هغوی په عذاب کښې دی اوهمیشه به وی.
ابن ابی حاتم کښې دی عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائی د شهیدانوروحونه د شین رنګ د مرغیو قالب کښې دی اوهغوی په جنت کښې چه کوم ځائ غواړی ګرځی راګرځی اود مؤمنانوروحونه د چرچڼړو په قالبونو کښې دی هغوی چه کوم ځائ غواړی په جنت ګرځی. اود عرش لاندې په فانوسونوکښې ارام کوی.د آل فرعون روحونه د توررنګ د مرغویه قالبونوکښې دی سحر هم دوزخ له خی اوماښام هم دا د هغوی پیش کیدل دی.
د معراج والا په اوږده واقعه کښې دی چه زه نی د یوډیر لوئ مخلوق طرف ته بوتلم په کوموکښې چه د هریوخیټه دیولوئ کور په شان وه چه هم آل فرعون سره قیدووآل فرعون به سحرماښام اور له راوستې شواو په کومه ورځ چه قیامت قایمیږی الله ﷻ به فرمائی دا فرعونیان سختوعذابونونه له بوځئ. اودا فرعونیان به د پیخوان والا د اوښانو په شان سرونه ښکته کړې کانړو او ونوکښې به ځړن کوی اوبالکل بې عقل اوبې شعوردی. ابن ابی حاتم کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی چه څوک احسان اوکړی که هغه مسلمان وی که کافر الله ﷻ هغه ته ضرور بدله ورکوی. مونږ تپوس اوکړو یارسول الله ﷺ کافرته څه بدله ملاویږی؟ وئ فرمائیل چه هغه صله رحمی کړې وی یاصدقه نی ورکړې وی یاڅه بل څه ښه کار نی کړې وی نوالله ﷻ د هغې بدله د هغه په مال کښې د هغه په اولاد کښې اود هغه په صحت کښې او

(١) صحیح مسلم کتاب المساجد باب استحباب التعوذ من عذاب القبر.....:٥٨٤، احمد:٢٣٨/٦.
(٢) صحیح بخاری کتاب الدعوات باب التعوذ من عذاب القبر:٦٣٦٦.
(٣) الطبری:٣٩٦/٢١.

هم په داسې ځيزونوکښې ورکوی. مونږ بياتپوس اوکړو په اخرت کښې څه ملاويږی؟ ونی فرمائيل د لونې درجې نه د کمې درجې عذاب. اوس بيا حضورﷺ ﴿اَدۡخِلُوۡۤا اٰلَ فِرۡعَوۡنَ﴾ (١) اولوستلو. ابن جرير کښې دی چه اوزاعی رحمه الله نه يوسړی تپوس اوکړولږ شان داخو مونږ ته اوښايه چه مونږ ګوروچه د ډيرو سپينو مرغو سيلونه سيلونه د سمندر نه راوځی اود هغې په مغربی غاړه کښې د سحر په وخت کښې ځی او دومره په زيات تعدادکښې چه څوك ئې شميرلې هم نه شی. د ماښام په وخت کښې هم داسې سيلونه سيلونه واپس راځی خودې وخت کښې د هغوی رنګ بالکل توروی. هغوی اوفرمائيل تا داښه معلوم کړی دی د دې مرغوپه قالبونوکښې د فرعونيانو روحونه دی چه سحر ماښام اورته پيش کولې شی. بيا د خپلو جالوطرف ته واپس کولې شی د هغوی وزرې سوزيدلې وی اودا توريږی. بياد شپې هغه واپس راتوکيږی اوتورې ترې رژی. بيا هغه د خپلو جالو طرف ته واپس کيږی. دغه حال د هغوی په دنياکښې دې اود قيامت په ورځ به الله ﷻ هغوی ته فرمائی دافرعونيان په سخت عذابونوکښې داخل کړئ. وائی چه د دوی شميرشپږ لاکهه دې کوم چه فرعونی فوځ وو.

مسنداحمدکښې دی حضورﷺ فرمائی په تاسوکښې چه کله هم څوك مری هرسحر ماښام هغه ځائ د هغوی په وړاندې پيش کولې شی. که هغه جنتی وی نوجنت اوکه دوزخی وی نو دوزخ اوورته وئيلې شی دا ستا اصلی ځائ دې چرته چه به الله ﷻ تاد قيامت په ورځ ليګی. داحديث په صحيح بخاری اوصحيح مسلم کښې دی. (٢)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَيَقُوۡلُ | فِي النَّارِ | يَتَحَآجُّوۡنَ | وَاِذۡ | |
| پس اوبه وائی | په وور کښی | جګړې کوی دا خلق | او کله چی به | |

اواخه وخت چی دوئ په دوزخ کښې ديوبل سره جګړې کوی نو کمزوری

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَبَعًا | لَكُمۡ | اِنَّا كُنَّا | اسۡتَكۡبَرُوۡۤا | لِلَّذِيۡنَ | الضُّعَفٰٓؤُا |
| تابع | تاسو لره | بيشکه وو مونږه | چی خان ئې غټ ګڼړلې وو | هغه کسانو ته | کمزوری خلق |

خلق به دمرتبو خاوندانو ته اووائی چی مونږ خو ستاسو تابعداری کوله ...............نوايا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ الَّذِيۡنَ | مِّنَ النَّارِ | نَصِيۡبًا | عَنَّا | مُّغۡنُوۡنَ | فَهَلۡ اَنۡتُمۡ |
| اوبه وائی هغه کسان | دوور نه | څه حصه | زمونږ نه | دفع کونکی | پس ايا يئ تاسو |

اوس مونږ نه څه لږ ډيرعذاب کمولې شئ .............................غټان خلق به اووائی چی اوس

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَدۡ حَكَمَ | اِنَّ اللّٰهَ | فِيۡهَآ | اِنَّا كُلٌّ | | اسۡتَكۡبَرُوۡۤا |
| فيصله کړی ده | بيشکه الله | په دې کښی يو | بيشکه مونږه ټول | | چی خانونه غټ ګڼړل هغوئ |

خو په کښې ټول دسيمئې پراته يو ........................ الله ﷻ دخپلو بندګانو په مينځ کښې

| | | | |
|---|---|---|---|
| لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ | فِي النَّارِ | وَقَالَ الَّذِيۡنَ | بَيۡنَ الۡعِبَادِ |
| نوکرانو ددوزخ ته | چی په وور کښی دی | اواوبه وائی هغه کسان | په منځ دبندګانو کښی |

قطعی فيصله کړې ده اوڅوک چی په دوزخ کښې پراته وی اهغوئ به ددوزخ څوکيداران فرښتوته اووائی

(١) البزار:٩٤٥، حاکم:٢/٢٥٣.
(٢) احمد:٢/١١٣، صحيح بخاری کتاب الجنائزباب الميت يعرض عليه مقعده بالغداة والعشی:١٣٧٩، صحيح مسلم:٢٨٨٦

| |
|---|
| ادْعُوْا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا |
| چې دعا اوغواړئ \| درب خپل نه \| چې سپك (يعنى كم) كړى \| زمونږ نه \| يوه ورځ |
| چې تاسو خپل رب نه سوال اوكړئ \| چې زمونږ نه يوورځ نيمه خو څه عذاب كم كړى |
| مِّنَ الْعَذَابِ۝ قَالُوْٓا اَوَلَمْ تَكُ تَاْتِيْكُمْ رُسُلُكُمْ |
| دعذاب نه \| اوبه وائى ورته هغوئ \| آيا نۀ وئ تاسو \| چې راتلل به تاسو ته \| رسولان ستاسو |
| فرښتې به به ورته اووائى \| چې آيا تاسو ته پيغمبرانو ښكاره نښې نه وې راوړې \| |
| بِالْبَيِّنٰتِ ط قَالُوْا بَلٰى ط قَالُوْا فَادْعُوْا |
| دواضحه حكمونوسره\|اوبه وايى هغوئ\|هوراتلل به\|اوبه وائى نوكران ددوزخ\|نوبياخوپه خپله دعا اوغواړئ |
| ............هغوئ به اقرار اوكړى چې هو راوړې ئې وې \| (فرښتې)به اووائى چې بياهم تاسودعااوكړئ |
| وَمَا دُعٰٓؤُا الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ۝ ع |
| اونۀ ده دعا \| د كافرانو \| مګر \| په ګمراهئ كښې ده(بې فائدې ده)\| |
| (اويادساتئ چې) دكافرانو دعا هميشه بې اثره پاتې كيږى \| |

قوله تعالى:: وَاِذْ يَتَحَآجُّوْنَ فِى النَّارِ

**دوزخ كښې د دوزخيانو جنګ جګړې** :- دوزخيان به د دوزخ نور عذابونه برداشت كولوسره د يو بل عذاب هم ښكاروى دكوم بيان چه دلته كولې شى.داعذاب به فرعونيانوته هم وى او نورودوزخيانوته هم يعنى دخپل مينځ بحثونه مباحثې اوجنګ جګړې.واړه به لويوته يعنى تابعدارى كونكى اوحكم احكام منونكى دچاد لوئې اوبزرګئى چه قائل ووادو چا خبرې به ئې منلې اود چا په وينا چه عمل كولو هغوى ته به وائى چه په دنيا كښې خو مونږ ستاسو تابعدار وو څه چه تاسو وئيل مونږ په ځائ راوړل د كفر او ګمراهئى خبرې چه كومې تاسو مونږ ته كولې ستاسود بزرګئى علم اوفضل سردارنى اوحكومت په وجه مونږه ټولې منلې اوس دلته خو تاسو زمونږ هم په څه كار راشئ.زمونږ د عذابونو څه حصه په خپل ځان واچونئ.دارئيسان مشران بزرګان او سرداران به جواب وركوى چه مونږ خو هم تاسوسره سوزيږو اولولپه كيږو.مونږ له چه كوم عذاب كيږى ولې داڅه كم دې چه مونږ ستاسو عذاب په ځان واچوو؟ د الله ﷻ حكم جارى شوى دې رب ﷻ فيصلې كړى دى هر يوته ئې دهغه د بدعمل مطابق سزا وركړې ده په دې كښې كمې نامكن دې. لكه چه بل آيت كښې دى د هر يود پاره ښه لوئ اوزيات عذاب دې كه تاسو پوهيږئ.

قوله تعالى:: قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا

كله چه دوزخيان پوهه شى چه الله ﷻ د هغوى دعا نه قبلوى بلكه اورى هم نه اوهغوى له رټنه وركوى اوفرمائيلې دى چه هم دلته پراته اوسئى اوماسره خبرې مه كوئى.نوهغوى به ددوزخ داروغه ګانو ته وائى چه دهغه ځائ څوكيداران دى لكه څنګه چه په دنيا كښې جيل خانوكښې ساتندونكى داروغه اوسپاهيان وى.هغوى ته به وائى لږ شان تاسو الله ﷻ ته دعا اوكړئى چه يوه ورځ خو زمونږ عذابونه لږ شان سپك كړى. هغوى به دوى ته وائى چه ولې په دنياكښې رسولانوتاسو ته دالله ﷻ احكام نه وو رسولى؟دوى به وائى چه اورسيدلې وو نوفرښتې به بيا وائى چه ښه ده پخپله الله ﷻ ته فرياد واوروئى. مونږ خود هغه په درباركښې ستاسود پاره هيڅ هم نه شو عرض كولې. بلكه اوس خو مونږ ستاسو د

چغو صورو هم خيال نه شوساتلي اومونږ پخپله تاسو نه ويزاره اوستاسو دښمنان يو. واورنې مونږ تاسو ته وايوکه تاسو پخپله دعاکونې که نورڅوك تاسو له دعاکوی نامکن دی چه ستاسو په عذابونو کښې کمې وی. د کافرانودعا نامنظوره او مردود ده.

| |
|---|
| إِنَّا لَنَنصُرُ |
| بېشکه خامخا مونږه امداد کوؤ |
| مونږ دخپلو ................ \| |
| رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ |
| درسولانو خپلو \| او دهغه کسانو \| چې ايمان ئې راوړی دی \| په ژوند ددنيا \| او په هغه ورځ |
| پيغمبرانو اود دايماندارو کسانو مدد کوؤ \| ................ په دنيا کښې هم او په هغه ورځ |
| يَقُومُ الْأَشْهَادُ ۝ يَوْمَ لَا يَنفَعُ الظَّالِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ |
| چې ودريږي به ګواهان \| هغه ورځ \| چې فائيده به نهٔ ورکوی \| ظالمانو ته \| عذرونه دهغوئ |
| چې خلق به ګواهان راپاڅی\| په کومه ورځ چې ظالمانو ته به عذر معذرت هيڅ فائده نه ورکوی |
| وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ ۝ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى |
| او دهغوئ دپاره لعنت دی \| او دهغوئ دپاره \| ډير بد کور دی \|او ورکړی وؤ مونږ \| موسی ته |
| اوپه لعنت به ګرفتار وی \| او هغوئ دپاره به (ددوزخ) ډيرخراب کور وی \| اوبېشکه مونږ موسی ﷺ |
| الْهُدَىٰ وَأَوْرَثْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ ۝ هُدًى |
| هدايت \| او وارثان کړل مونږه \| بني \| اسرائيل \| دکتاب \| چې هغه هدايت وؤ \| |
| ته (کتاب د) هدايت ورکړو \|او بنی اسرائيل مو د دې کتاب وارثان جوړ کړل \| چې عقل مندو |
| وَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ۝ فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ |
| او نصيحت وؤ\| دپاره دخاوندانو دعقلونو \| پس صبر کوه \| بيشکه وعده دالله \| حقه ده \| |
| دپاره هدايت او نصيحت وو \| نوته صبر کوه \| بېشکه دالله ﷻ وعده رښتينې ده \| او دخپلې |
| وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ |
| او ښنه اوغواړه\| دپاره دګناهونو خپلو \| او تسبيح وايه \| دثنا درب خپل سره \| په ماښام |
| کوتاهئ (دالله ﷻ ) نه معافي غواړه \| او صبا ماښام دخپل رب پاکی بيانوه \| اودهغه |
| وَالْإِبْكَارِ ۝ إِنَّ الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ بِغَيْرِ سُلْطَانٍ |
| او په سحر کښې \| هغه کسان \| چې جګړې کوی\| په ايتونو د الله کښې \| بغير د دليل نه |
| تعريفونه کوه\| څوک چې بغير د څه سند نه د الله ﷻ د ايتونو په حق کښې جګړې کوی \| کوم چې |
| أَتَاهُمْ إِن فِي صُدُورِهِمْ إِلَّا كِبْرٌ مَّا هُم |
| چې راغلې وی هغوئ ته\| نه ده په سينو د هغوئ کښې \| مګر لوئی ده \| چې نهٔ دی هغوئ |
| دوئ ته (د اللهﷻ د طرفنه) رارسيدلې وی \| د هغوئ په زړونو کښې د تکبر نه سوا بل څه نشته |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِبَالِغِيهِ | فَاسْتَعِذْ | بِاللَّهِ | إِنَّهُ هُوَ | السَّمِيعُ |
| رسيدونكي هغې ته | پس پناه غواړه | په الله سره | بيشكه هغه | هم هغه اوريدونكي دي |
| اخو هغوئ دغې لوئي ته (په رښتيا) هيڅري رسيدلي نه شي اِنوته دالله پناه غواړه اهغه هرڅه آوري | | | | |
| الْبَصِيرُ | | | | |
| ليدونكي دي | | | | |
| هرڅه وينی گوری | | | | |

قوله تعالى:: إِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا

**ذرسولانو امدادكونكې هم الله ﷻ دې او ديوې شبهې جواب** :په آيت كښې د رسولانود امداد د الله ﷻ وعده ده.بيامونږ گورو چه بعضې رسولان دهغوی قومونو قتل كړې دی لكه يحيى ﷺ زكريا ﷺ او ح شعيب ﷺ اوبعضوانبياء كرامو خپل وطن هم پريخودو لكه حضرت حضرت ابراهيم ﷺ او عيسى ﷺ چه هغه ته الله ﷻ د آسمان طرف ته هجرت اوكړو. بياولې څوك نه شي ونيلې چه دا وعده ولې پوره نه شوه؟ ددې دوه جوابونه دی يوخودا چه لكه عام خبردې خومراددبعضو نه دې اوداعموماً په لغت كښې مونډلې شي چه مطلق ذكر وی او مراد ترې خاص وی. دويم داچه د امداد كولو نه مراد بدله اخستل وی. نويونبي هم داسې نه دې تيرشوې چاته چه تكليف رسونكونه قدرت زبردسته بدله نه وی اخستې ديحيى ﷺ زكريا ﷺ اوشعيب ﷺ په قاتلانو باندې الله ﷻ دښمنان اخته كړل اوهغوی ئې تباه برباد كړل دهغوی د وينوولې ئې اوبهيولې اوهغوی ئې ډير په ذلت سره مرگ ته حواله كړل.دنمرود مشهوره واقعه دنياته معلومه ده چه قدرت هغه په څنگه نيولو سره راگيركړو. عيسى ﷺ ته چه كومو يهوديانو په سولئی كولو كوشش كړې وو په هغوی باندې الله ﷻ روميان غالب كړل اود هغوی د لاسه د هغوی سخت ذلت او سپكاوې اوشو اواوس چه كله قيامت سره نيزدې هغوی راكوز شی نو بيا به دجال سره هغه يهوديان كوم چه د هغه لښكريان وی قتل كوی. او امام عادل اوحاكم به منصف جوړيدوسره تشريف راوړی صليب به مات كړی خنزير به قتل كړی اوجزيه به باطل كړی د اسلام نه بغيربه هيڅ نه قبلوی.هم دادې د الله ﷻ عظيم الشان امداد اوهم دا د قدرت دستور دې كوم چه د اول نه دې اوتراوسه پورې جاری دې چه هغه د خپلو مؤمنانوبنديگانودنياوی امداد هم كوی. اود هغوی د دښمنانونه پخپله بدله اوانتقام اخلی اود هغوی سترگې په يخوی. په صحيح بخاری شريف كښې دحضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دې رسول الله ﷺ فرمانی چه الله ﷻ فرمانی څوك چه زما دوستانو سره جنگ كوی هغه زه د جنگ د پاره اوغوښتم.([1])په دويم حديث كښې دی چه زه د خپلو دوستانود طرف نه بدله ضرور اخلم لكه چه زمرې بدله اخلی. ([2])هم په دې وجه هغه مالك الملك د قوم نوح نه د عاديانو ثموديانو نه د اصحاب الرس نه، قوم لوط نه، اهل مدين نه اود دوی په شان د هغه ټولوخلقو نه كومو چه دالله ﷻ رسولان دروغ گنړلې وو اود حق خلاف ئې كړې وو بدله واخستله. يويوئی په راغوندولوسره تباه اوبربادكړل اوپه هغوی كښې چه څومره مؤمنان وو هغه ټول ئې بچ كړل. امام سدی رحمه الله فرمائی په كوم قوم كښې چه دالله ﷻ رسول راغلو ياد الله ﷻ ايماندار بنديگانو هغوی ته دالله تعالى پيغام رسولو دپاره اودريدل اوهغه قوم دهغه نبيانواويادهغه مؤمنانو بې عزتی اوكړه اوهغوی ئې وهلې ټكولې يا قتل كړی خامخا هم په هغه زمانه كښې دالله تعالى عذاب په هغه قوم باندې راناز ل شوې دې. د انبياؤ

[1]) صحيح بخاری كتاب الرقاق باب التواضع:٦٥٠٢.
[2]) شرح السنة:١٢٤٢.

کرامود قتل بدله اخستونکی راپاسیدل اود اوبو په شان ئی دهغوی په وینه تګی زمکه خړوب کړه. نو مؤمنان اوانبیاء کرام دلته قتل کړې شو خود هغوی وینې رنګ راوړو اود هغوی د دښمنان ئی هم لکه د بوسووالوزول. ناممکن دی چه د داسې خاص بندیګانو امداد نه وی شوې اود هغوی د دښمنانو نه بدله نه وی اخستې شوې.

**دحضرت مصطفی ﷺ دعوت په ټوله دنیاکښې خورشو:** اشرف الانبیاء حبیب الکبریاحضرت مصطفی ﷺ دژوند حالات ددنیااود دنیاد خلقو په وړاندې دی چه الله تعالی حضورﷺ ته اودهغوی صحابه کرامو ﷡ ته غلبه ورکړه اود دښمنانوټول کوششونه ئی بې نتیجې کړل. په هغه ټولوباندې ئی حضور ﷺ ته ښکاره غلبه ورکړه. دهغوی کلمه ئی اوچته کړه.دهغوی ﷺ دین ددنیاټول دینونه راګیرکړل.دقوم د زبردست مخالفت په وخت کښې ئی خپل نبی ﷺ مدینې ته اورسولو اودمدینې والا ئی رښتونې خانونه قربانی کونکې جوړکړل اود مشرکانو ټول زور اوطاقت ئی په جنګ بدرکښې ختم کړو. د هغوی د کفر ټولې وزنی ستنې ئی په دې جنګ کښې د بیخ نه اوویستلې. دمشرکانوسرداران خو یاټکړې ټکړې کړې شواویاد مسلمانانوپه لاس کښې قیدیان شو اود نامرادنی سره ستهونه ښکته کړی ښکاریدل. په قیداوبندکښې تړلی شوی په ذلت اوسپکاوی سره د مدینې په کوڅوکښې لاس په لاس اوګریوان په ګریوان شو.دالله تعالی حکمت بیا په هغوی باندې احسان اوکړو اویوځل ئی بیا موقعه ورکړه اوفدیه اخستوسره ئی آزادکړل خوچه کله بیاهم د رسول الله ﷺ د مخالفت نه منع نه شو اوپه خپلو کړو باندې کلك ولاړوو نوهغه وخت هم راغلو د کوم ځائ نه چه د الله تعالی نبی ﷺ پټ پټ د شپې په تیاره کښې پیدل هجرت کړې وو هلته د فاتح په حیثیت سره داخل شو اوپه ستهونوباندې لاسونه تړلی د رسول الله ﷺ دښمنان راوستلې شو اود حرم د ښارحرمت اوعظمت رسول الله په وجه پوره کړې شو اوټول کفر او شرك اود هرقسم بې ادبونه بیت الله پاك اوصفاکړې شو. آخر یمن هم فتح شو اوټول جزیره عرب د رسول الله ﷺ په قبضه کښې راغلو اوډلې ډلې خلق دالله تعالی په دین کښې داخل شو. بیا رب العالمین خپل رسول رحمت للعالمین خپل خان له راوبللو اودهغه ځاې په کرامت اوعظمت سره خپله میلمستیاکښې اوساتلو او پیرخونې ئی پرې اوکړې. بیا د حضورﷺ نه پس د هغوی نیکان ملګری صحابه کرام ﷡ دهغوی په ځائ کینول چه محمدی ﷺ جهنډا په لاس اودریدل اود رب توحیدطرف ته نی د الله تعالی مخلوق راوغوښتلو اوکوم بندیز چه په لارکښې راغلوهغه ئی لرې کړو. د چمن کوم ازغې چه ښکاره شو هغه ئی پرې کړو. کلی کلی ښاریې په ښاریې اوملك په ملك ئی د اسلام دعوت اورسولو. خوك چه منع کونکی وو هغوی ته د منع مزه ورکړه په دې ضمن کښې د اسلام حکومت مشرق اومغرب کښې خورشو. په زمکه اود زمکې د خلقو په بدنونوباندې صحابه کرامو ﷡ فتح حاصله نه کړه بلکه د هغوی په زړونوباندې ئی هم فتح حاصله کړه. په زړونوکښې اسلامی طریقې راوستلې اوټول ئی د کلمه ئی توحید لاندې راجمع کړل.محمدی ﷺ دین د زمکې حصه حصه او ګوټ ګوټ په خپله قبضه کښې واخستلو. د دین دعوت کنړو غوړونوته هم اورسیدلو. صراط محمدی ﷺ ړندو هم اولیدله. الله تعالی دې دې پاکې ډلې ته د خپلو اولوالعزمیانو بهترینه بدله ورکړی. آمین الحمدلله ترننه پورې د الله تعالی دین غالب اوکامیاب دې. ترننه پورې په مسلمانانو کښې حکومت او سلطنت موجود دې. ترننه پورې دهغوی په لاس کښې د الله تعالی اود هغه د رسول الله ﷺ کتاب او کلام موجود دې اوترننه پورې د هغوی په سرونود خپل رب لاس دې. د قیامته پورې به دادین کامیاب او آباد وی څوك چه دې سره ورانیږی د خپلې خلې هغه به واپس خوری اوبیابه چرې هم مخ اونه ښائی هم دا مطلب دې د دې مبارك آیت.

**قوله تعالی::** وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ ۞

قیامت کښې به هم نصرت وي د قیامت په ورځ به هم د دیندارانو امداد اونصرت په ډیره لویه او په اوچته پیمانه سره کولې شي. د ګواهانو نه مراد فرښتې دي. بل آیت کښې ﴿یوم﴾ بدل دې د رومبي آیت په دې لفظ سره. په بعضې قراتونوکښې ﴿یوم﴾ دې نودا لکه د اولنی ﴿یوم﴾ تفسیردې. د ظالمانونه مراد مشرکان دي. د هغوی عذر او فدیه به د قیامت په ورځ نه شي قبلولې. هغوی به د رب د رحمت نه په هغه ورځ لرې دیکه کولې شي. د هغوی د پاره به خراب کور یعنې دوزخ وي. دهغوی عاقبت به خراب وي. موسی علیه السلام ته مونږ هدایت او نور وراوبښلو دبنی اسرائیلو انجام مونږ ښه کړو. د فرعون د مال اوملك مونږ هغوی وارثان جوړکړل ځکه چه هغوی دخپل الله تعالی په اطاعت کښې اود نبی په تابعدارئ کښې په تینګتیاسره سختئ برداشت کولې. دکوم کتاب چه دوی وارثان شو هغه دعقل مندو دپاره د سر نه واخله ترپښو پورې هدایت اوعبرت وو. اې نبی ﷺ ته صبر کوه د الله تعالی وعده رښتونې ده هم ستا نوم به اوچتیږي.د انجام په لحاظ سره به ته اوستا ملګری غالبیږي. رب د خپلې وعدې خلاف هیڅ کله هم نه کوي. بغیرد څه شك اوشبه به د الله تعالی دین اوچتیږي. ته د خپل رب استغفارکوه.حضور ﷺ ته حکم ورکولوسره په اصل کښې دحضور ﷺ امت پدې استغفار باندې تیارولې شي. د ورځې په آخری اود شپې د شروع وخت کښې اود ورځې د شروع اود شپې په آخری وخت کښې په خصوصیت سره د خپل رب پاکي اوتعریف بیانوه. کوم خلق چه په باطل باندې کلك وي اوحق اخوا کوي دلائل بغیرحجت سره روستوکوي د هغوی په زړونوکښې بغیرد کبر نه بل هیڅ نه شته. په هغوی کښې دحق د تابعدارئ نه سرکشي ده. دوی د رب د خبرو عزت نه پیژنی اوچه کوم تکبر کوم ځان خودل اوکوم خپل اوچتوالې دوی غواړي هغه به دوی ته هیڅ کله هم حاصلیدونکې نه دې. دهغوی متصود باطل دې د هغوی مطلوب لاحاصل دې د الله تعالی پناه غواړه د هغوی په شان حال دې د ښه سړی نه وي اود دې کبرژنوخلقو شیطانونه هم د الله تعالی پناه غواړه. داآیت د یهودیانوباره کښې نازل شوې دې. دوی به وئیل چه دجال به هم د دوی نه وي اود هغه په زمانه کښې به دوی د وخت بادشاهان وي. الله تعالی خپل نبی ﷺ ته اوفرمائیل چه د دجال د فتنه نه د الله تعالی پناه غواړه هغه اوریدونکې اولیدونکې دې خوآیت د یهودیانو باره کښې نازلیدل خودل اود دجال بادشاهي اود هغه د فتنه نه د پناه حکم دا ټول ځیزونه د تکلف نه ډك دي. اومنلې شوچه دا تفسیر د ابن ابی حاتم دې ولې داقول د ندرت نه خالی نه دې ټیك هم دا دی چه کوم عام دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

| | | | |
|---|---|---|---|
| لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | اَكْبَرُ | مِنْ خَلْقِ النَّاسِ |
| خامخا پیدا کول داسمانونو | او دزمکې | ډیر لوئ کار دې | دپیدا کولو دخلقو نه |
| ادانبکاره خبره ده چې داسمانونو اودزمکې پیداکول د بنیادمو پیداکولو نه زیات غټ کار | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَ النَّاسِ | لَا يَعْلَمُوْنَ | وَمَا يَسْتَوِى | الْاَعْمٰى | |
| ولیکن | اکثر دخلقو نه | نه پوهیږي | اونه برابریږي | ړوند | |
| دې ا ...........خو زیات خلق پدې نه پوهیږي ا ...........او ړوند او بینا | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَالْبَصِيْرُ | وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | وَلَا الْمُسِیْٓءُ |
| او بینا | او هغه کسان چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیك | اونه بدکار (برابریږي) |
| یو برابر کیدې نشي ا اونه صاحب ایمان نیکو کار اوبدکار (برابر کیدیشي) | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَلِيْلًا | مَّا | تَتَذَكَّرُوْنَ | اِنَّ السَّاعَةَ | لَاٰتِيَةٌ | |
| ډير لږ دي | هغه | چي کوم نصيحت قبلوئ تاسو | بيشکه وقت دقيامت | خامخا راتلونکي دي | |
| خوتاسو خلق ډير کم نصيحت قبلوئي | ................ قيامت خو خامخا راتلونکي دي | | | | |
| لَارَيْبَ | فِيْهَا | وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَ النَّاسِ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | |
| نشته شک | په هغې کښې | وليکن | زيات خلق | نه راوړي ايمان | |
| په دې کښې هيڅ شک نشته | خو زيات خلق داخبره نه مني | | | | |
| وَقَالَ رَبُّكُمُ | ادْعُوْنِيْٓ | اَسْتَجِبْ لَكُمْ | اِنَّ الَّذِيْنَ | | |
| اوواني رب ستاسو | اوغواړئ دعا زمانه | زهٔ به قبلوم دعا ستاسو | بيشکه هغه کسان | | |
| او ستاسورب فرمائيلي دی | چې زمانه دعاغواړئ | زه به ستاسو دعاقبلوم | بيشکه کوم خلق چې | | |
| يَسْتَكْبِرُوْنَ | عَنْ عِبَادَتِيْ | سَيَدْخُلُوْنَ | جَهَنَّمَ | دٰخِرِيْنَ | |
| چې په غرور کښې مخ اړوي | دعبادت زمانه | ننوځي به هغوئ | دوزخ ته | ذليله | |
| زما دعبادت (دعا) نه تکبر کوي | هغوئ به ډير ذلت سره په دوزخ کښې داخليږي | | | | |

**قوله تعالى:: لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**

**د قيامت نه انکار آخر ولې ؟:-** الله تعالى قادرمطلق فرماني مخلوق به هغه د قيامت په ورځ د نوی سر نه بياضرور راژوندی کوی. هغه د آسمان اوزمکې په شان يوزبردست مخلوق پيداکړونود انسان پيداکول يادهغه ورانول اوبيا جوړول هغه ته څه ګران دي؟يويل آيت کښې دي چه آياداسې خبره اودومره واضحه حقيقت هم د دروغ ګڼړلو قابل دې چه کوم الله تعالى آسمان اوزمکه پيداکړل اود دومره لوئ څيز په پيداکولو سره هغه ستړې نه شو ياعاجزنه شو نوهغه ته د مړو سوزول څه ګران دی. دومره صفا دليل چه هم د چا په وړاندې د دروغو څيزوی نو د هغه په معلومات يقيناً د ژړا قابل دی. دهغه په جهالت کښې څه شك دې؟چه داسې غټه خبره باندې هم نه پوهيږي. حيرانتياده چه د لوئ نه لوئ څيز مني اود هغې نه ډيرزيات وړوکې څيز کيدل نه مني. دړوند او بينا فرق خو ښکاره دې هم دغه شان ټيك د مسلمان اومجرم فرق دې. اکثر خلق څنګه کم نصيحت قبلوی يقين اوکړنی چه دقيامت راتلل حتمی دی بيا هم ددې تکذيب کول اوبېدې باندې يقين نه کول نه ډيرخلق نه منع کيږي.يويمني شيخ خپل اوريدلې روايت بيانوی چه د قيامت سره نيزدې به په خلقو باندې بلاګانې راځی اود نمر ګرموالې به ډير سخت شی. والله اعلم.

**قوله تعالى:: وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُوْنِيْٓ اَسْتَجِبْ لَكُمْ**

**ددعا اهمت او دعاځوک قبلوی:-** چه دالله تعالى سبحانه وتعالى ددې احسان تصديق اوشی چه هغه مونږ ته ددعا هدايت کوی اودقبليدو وعده کوی.امام سفيان ثوری رحمه الله به پخپلو دعاګانو کښې فرمانيل اې هغه الله تعالى چه تاته هغه بنده ډير ښکلې ښکاری چه په کثرت سره د هغه نه دعاکوی اوهغه بنده هغه نه ډير سخت بدلګی چه هغه نه دعاونه کړی.اې زماربه داصفت خوصرف هم ستا دې.شاعر واني:

الله يغضب ان ترکت سواله وابنو آدم حين يسال يغضب

يعنی د الله تعالى شان دادې چه کله ته دهغه نه نه غواړې نوخفه کيږي اودانسان داحالت دې که د هغه نه غواړې نو هغه خفه کيږي.کعب احبار رحمه الله فرمانی دې امت ته درې څيزونه داسې ورکړې شوی دی د دوی نه وړاندې يوامت ته هم نه دی ورکړې شوی بغيرد نبی نه ① ګوره چه هريو نبی ته دالله تعالى د

طرف نه دا فرمان شوی دی چه ته په خپل امت باندې ګواه ئې ولې په ټولوخلقو باندې الله تعالى ته ګواه کړی ئې ② وړاندې نبیانوته به ونیلې شو چه په تاباندې په دین کښې حرج نشته خودې امت ته اوفرمائیلې شو چه ستاسو په دین کښې په تاسو باندې هیڅ نشته. ③ هرپونبی ته به ونیلې شو مارابله زه به ستاربلل قبلوم خودې امت ته اوونیلې شو تاسو ما ته آوازکونئ زه به ستاسو آواز قبلوم. (ابن ابی حاتم) ابویعلی کښې دی الله تعالى حضور ﷺ ته اوفرمائیل څلورخصلتونه دی په کوم کښې چه یوزماد پاره دې یوستاد پاره یوستا اوزما په مینځ کښې اویوستااوزماد نورو بندیګانو په مینځ. کوم چه خاص زماد اره دې نوهغه خودادې چه صرف زماعبادت کوه او ما سره څوك شریك کوه مه. اوکوم چه ستا حق په ماباندې دې هغه دا چه ستا د هریود خیر د کار بدله به زه تاله درکوم. اوکوم چه زما اوستا په مینځ کښې دې هغه دا چه ته دعاکوه او زه به ئې قبلوم اوڅلورم خصلت کوم چه زما اوستا د نورو بندیګانو په مینځ کښې دې هغه داچه ته دهغوی دپاره هغه غواړه کوم چه دخان د پاره خوښوې[۱] مسند احمد کښې د حضور ﷺ فرمان دې چه دعا عین عبادت دې بیا حضور ﷺ هم دا آیت تلاوت کړو.داحدیث په سنن کښې هم دې[۲] امام ترمذی رحمه الله دې ته حسن صحیح وائی ابن حبان اوحاکم رحمهما الله هم دا په خپل صحیح کښې راوړلې دې.

مسندکښې دی کوم سړې چه د الله تعالى نه دعانه کوی الله تعالى په هغه باندې غضب ناك وی. ( [۳] )

محمدبن مسلمه انصاری رضی الله عنه د مرګ نه پس د هغه د تورې د تیکی نه یوه پرچه راووتله په کوم کښې چه لیك ووته د خپل رب درحمت موقعی لټوه.ډیرممکن دی چه ته په یوداسې وخت کښې دخیردعا اوکړې چه هغه وخت د رب رحمت په جوش کښې وی اوتاته هغه نیك بختی ملاوشی د کوم نه پس چه کله هم ارمان او افسوس کول نه پریوځی. په آیت کښې د عبادت نه مراد دعااو توحید دې. مسنداحمدکښې دی دقیامت په ورځ به کبرژن خلق لکه دمیږو راجمع کولې شی. د وړوکی نه وړوکې څیز به هم د هغوی دپاسه وی. هغوی د بولس نومې دوزخ جیل خانه کښې اچولې شی اوشغلې وهونکې أور به د هغوی په سرونوباندې لمبې وهی. هغوی باندې به د دوزخیانو وینې څه وې متیازې وغیره څکولې شی. ( [۴] )

ابن ابی حاتم کښې دی یوبزرګ فرمائی زه د روم په ملك کښې د کافرانویه لاس راګیرکړې شوې ووم یوه ورځ ما واوریده چه یوغیبی آواز کونکې د غرد څوکې نه په اوچت آواز باندې وائی: اې الله په ده باندې حیرانتیا ده چه تاپیژنی اودې سره ستانه بغیر د نورو د ذات نه ئې امیدونه تړلی دی. اې الله په ده باندې هم حیرانتیا ده چه ستاد پیژندګلوسره خپل حاجتونه د نوروخواته اوړی.بیالږ شان اودریدو او بیابه زوره آواز ئې اوکړو ونې ونیل چه پوره تعجب دې په هغه چه تاپیژنی اود نورو د رضامندئی د پاره هغه کارونه کوی د کوم نه چه ته خفه شې. دې اوریدوسره ما په اوچت آواز سره تپوس اوکړو چه ته چرته پیرې ئې که انسان؟ جواب راغلو انسان یم. ته د خپلوهغه کارونونه توجه اخوا کړه چه تاله فائده نه درکوی اوپه هغه کارونوکښې مشغول شه کوم چه ستاد فائدې دی.

---

[۱] مسندابی یعلی:۲۷۵۷

[۲] احمد:۲۷۱/٤، ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة المؤمن:۳۲٤۷وهوصحیح، ابوداوٗد:۱٤۷۹،ابن ماجه:۳۸۲۸، ابن حبان:۸۹۰.

[۳] احمد:٤٤۳/۲،ترمذی: ۳۳۷۳، ابن ماجه: ۳۸۲۷

[۴] احمد:۱۷۹/۲ومسندالحمیدی ۵۹۷ وسنده حسن.

اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ

الله هغه ذات دي | چې جوړه ني کړه ستاسو دپاره | شپه | چې تاسو ارام اوکړئ | په هغې کښې |

الله تعالى هغه ذات دي | چې ستاسو دپاره ئې شپه جوړه کړه | چې ارام په کښې کوئ

وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ط اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ

او ورځ | روښانه | بيشکه الله | خاوند دفضل دي | په خلقو باندې | وليکن |

اوورځ ئې درله روښانه جوړه کړه | بيشکه چې الله ﷻ په خلقو ډيرې مهربانئ کړې دي

اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ۝ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ

زيات دخلقو نه | نهٔ اوباسي شکر | دغه الله | رب ستاسو دې | پيدا کونکې |

خو زيات خلق شکر نه کوي | ..........هم دا الله ﷻ دې چې ستاسو رب دې | ادهر څيز پيدا کونکې دې

كُلِّ شَيْءٍ ۘ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۡ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ۝

دهر څيز | نشته لائق دعبادت | مګر خاص هم هغه دې | نو کوم طرفته | دوکه کړې کيږئ تاسو |

د هغه نه سوا بل څوک دعبادت لائق نشته دې | نودا تاسو کوم خوا اړولې روان يئ

كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ الَّذِيْنَ كَانُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

دارنګې | دوکه کړې شوې دې | هغه کسان | چې وو هغوئ | په ايتونو دالله سره |

دغه شان هغه خلق هم اړولې روان وو | چې دالله ﷻ د ايتونو نه به ئې انکار کولو

يَجْحَدُوْنَ ۝ اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا

چې انکار به ئې کولو | الله هغه ذات دې | چې جوړه ئې کړه | ستاسو دپاره | زمکه | ځائې دقرار |

..........الله ﷻ هغه ذات دې | چې زمکه ئې ستاسو د استوګنې ځائې جوړ کړې دې

وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً وَّصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ

او اسمان | چت | او شکل ئې جوړ کړو ستاسو | پس ډير ښائيسته ئې جوړ کړو شکل ستاسو |

او اسمان ئې درباندې چت جوړ کړې دې | او ستاسو صورتونه ئې جوړ کړې دی | نو څه ښه صورتونه دې

وَرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ط ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚ

او رزق ئې درکړو تاسو له | دپاکو څيزونو نه | دغه | الله | رب ستاسو دې |

اوښه ښه پاکيزه خوراکونه ئې درته روزي کړې دی | هم دا الله ﷻ ستاسو رب دې

فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ هُوَ الْحَيُّ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

پس برکت ورکونکې دې الله | چې پالونکې دمخلوقاتو دې | هغه ژوندې دې | نشته لائق دعبادت | مګر هغه دې |

نو الله ﷻ ډير دبرکتونو ذات دې | چې د ټول مخلوق پالونکې دې | دې هميشه ژوندې دې | ددهٔ نه سوا |

فَادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ط اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

پس اواز کوئ هغه ته | حال دا چې خالص کونکې يئ | هغه لره | ددين | ثنا الله لره ده |

بل څوک معبود نشته دې | نو تاسو په اخلاص سره ددهٔ بلنه کوئ | ټول تعريفونه الله ﷻ لره دی

| |
|---|
| رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ۝ |
| چې پالونکې دمخلوقاتو دې ا |
| چې دټولو مخلوقاتو رب دې ا |

قوله تعالى: اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ

د الله تعالى د بې شميره نعمتونو تذكره:- الله تعالى خپل احسان بيانوى فرمائي هغه شپه د سكون اوآرام ځيزجوړكړې دې اوورځ ئې روښانه او پرقيندنه كړه دې د پاره چه هرسړې په كارروزګاركښې سفر كښې د رزق په لټون كښې آساني وى اود ټولې ورځې تكليف او ستومانتياد شپې په سكون او آرام سره كوزه شي. په مخلوق باندې الله ﷻ ډير لوئ فضل اورحم كونكې دې خواكثر خلق د خپل رب ناشكرى كوى. دا ځيزونه پيداكونكې اودآرام اوراحت سامانونه وركونكې هم هغه الله واحددې چه دټولو ځيزونو خالق دې دهغه نه بغيرڅوك د عبادت لائق نشته اونه دهغه نه بغيربل څوك د مخلوق پالونكې شته بيا تاسو ولې دهغه نه بغيرد نورو عبادت كوئ؟ څوك چه پخپله مخلوق دى اوهغوى هيڅ ځيز هم نه دې پيدا كړې بلكه د كوموبتانوچه تاسو عبادت كوئ هغه خوپخپله ستاسو پخپلو لاسونوجوړكړى دى.د دوى نه وړاندې مشركانوهم دغه شان بې دليل اوبې حجته دغيرالله عبادت كولو خپل نفساني خواهشات ئې مخې ته كيخودل اوربانى دلائل ئې دروغ اوګڼړل اوجهالت ئې مخې ته كړو اودهوكه شو. الله تعالى زمكه ستاسو د پاره د آرام ځاى جوړكړو يعني ولاړه اود فرش په شان خوره چه په دې باندې تاسو خپل ژوندتيركړئ لاړشئ راشئ تګ راتګ اوكړئ. غرونه ئې په دې كښې ورخښ كړل ونې درولې چه اوس اونه خوزيدې شي.هغه آسمان چت جوړكړودهرقسم نه محفوظ دې هم هغه تاسوپه ښكلې شكلونو كښې پيداكړئ. هريوجوړئ ټيك ټاك او ښكلې ښكاريدونكې جوړكړو.مناسب قامت، مناسب اندامونه ښكلې بدن اوښكلې مخ ئې دركړو.ښائسته اومزيدار ځيزونه ئې دخوراك څښاك دركړل. پيدا هغه كړئ آبادهغه كړئ هغه درباندې خوراك څښاك اوكړو هغه لباس درواغوستلې نوپه صحيح معنى كښې خالق اورازق هم هغه رب العلمين دې.لكه چه په سورت بقره كښې ارشاددې ﴿يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ۝﴾[1]يعنى خلقودخپل هغه رب عبادت كوئ چا چه تاسو او تاسو نه وړاندې خلق پيداكړى دې د پاره چه تاسوبچ شئ. ستاسو د پاره ئې زمكه فرش او آسمان چت جوړكړو اودآسمان نه ئې باران نازل كړو اوددې په ذريعه ئې دزمكې نه ميوې راوويستلې تاسو ته رزق دركړونوتاسوسره د دې خبرو د پيژندلو د الله تعالى نورڅوك شريكان مه جوړوئ. دلته ئې هم خپل دا صفت بيانولوسره اوفرمائيل چه هم دغه الله تعالى ستاسو رب دې اود ټول جهان رب هم هغه دې. هغه دبركت مالك دې هغه اوچت پاك لوئ اوبزرګ دې هغه د ازل نه دې اوترابده پورې به وى.هغه ژوندې دې په هغه كله هم مرګ نه راځي هم هغه اول آخر ظاهر اوباطن دې. د هغه يوصفت هم په چاكښې نشته.دهغه نظير اوعديل هيڅ څوك نشته. تاسو له پكاردى چه د هغه توحيدمنلوسره د هغه نه دعا كوئ اود هغه په عبادت كښې مشغول اوسيږئ. د ټولوتعريفونو مالك هم الله تعالى رب العلمين دې. امام ابن جرير رحمه الله فرمائي چه د اهل علم د يوجماعت نه نقل دى چه لااله الاالله لوستونكى له ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝﴾[2]هم لو ستل پكاردى. دې دپاره چه په دې آيت باندې عمل اوشي.دابن عباس رضی الله عنه نه هم دا روايت دې[3] سعيدبن جبير رحمه الله فرمائي كله چه ته﴿فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ۝﴾[1]لولې نو لااله

---

[1] ۲/البقرة:۲۱.
[2] ۱/الفاتحة:۱.
[3] حاكم:۲/۴۳۸

الاالله وايه اودې سره ﴿ اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴾ [2] هم وايه.عبد الله بن زبير ؓ دهرمانځه دسلام نه پس ﴿لااله الا الله وحده لاشريك له له الملك وله الحمد وهوعلى كل شئ قدير. لاحول ولاقوة الا بالله. لااله الا الله ولا نعبد الا اياه له النعمة وله الفضل وله الثناء الحسن لااله الا الله مخلصين له الدين ولوكره الكفرون﴾ لوستلو اوفرمانيل به نى رسول الله ﷺ به هم داكلمې د هر مانځه نه پس لوستلې. (مسلم ابوداؤد اونسائى)

قُلۡ | اِنِّىۡ نُهِيۡتُ | اَنۡ اَعۡبُدَ

| اووايه | چې زۀ منع کړې شوې يم | چې زۀ عبادت اوکړم

(ائې پيغمبره) ته ورته اووايه چې زه خودذې نه منع کړې شوې يم| چې دالله ﷻ نه

الَّذِيۡنَ | تَدۡعُوۡنَ | مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ | لَمَّا | جَآءَنِىَ | الۡبَيِّنٰتُ

دهغه هستيانو | چې تاسو ئې رابلئ | بې دالله نه | هر کله چې | راغلل ماته | واضحه دليلونه |

سوا ستاسو دنورومعبودانو عبادت اوکړم| ددې باوجود چې ماته دخپل رب دطرفنه ښکاره نښې

مِنۡ رَّبِّىۡ | وَاُمِرۡتُ | اَنۡ اُسۡلِمَ | لِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿٦٦﴾ | هُوَ الَّذِىۡ

دطرفه درب زما نه |او حکم شوې دې ماته | چې زۀ غاړه کيږدم | رب العالمين ته | هغه هغه ذات دې

رارسيدلې دی|اوماته خو بس دا حکم دې اچې درب العالمين وړاندې سرتيټوم |الله ﷻ هغه ذات دې

خَلَقَكُمۡ | مِّنۡ تُرَابٍ | ثُمَّ مِنۡ نُّطۡفَةٍ | ثُمَّ مِنۡ عَلَقَةٍ

چې پيدا ئې کړئ تاسو | دخاورې نه | بيا دنطفې نه | بيا دوينې دټوټې نه |

چې تاسو ئې دښاورې نه پيدا کړې يئ | بيا ئې دڅاڅکې اوبو نه | بيا ئې د وينې له ټوټې نه

ثُمَّ يُخۡرِجُكُمۡ | طِفۡلًا | ثُمَّ لِتَبۡلُغُوۡۤا | اَشُدَّكُمۡ

بيا هغه رااوباسى تاسو |په شکل دبچى | بيا لويوئ تاسو چې اورسيږئ | پوره قوت خپل ته |

بيا ئې ماشوم (دمورد خيټې نه) رااوويستلئ| بيا تر دې چې د کې ځوانئ ته اورسيدئ

ثُمَّ لِتَكُوۡنُوۡا | شُيُوۡخًا ۚ | وَمِنۡكُمۡ | مَّنۡ | يُّتَوَفّٰى

بيا چې شئ تاسو | بوډاګان | او څينې ستاسو نه | هغه څوك دې | چې وفات کړې شى |

بياتردې چې بوډاګان شوئ| اوځوک در کښې وړاندې مړ شى اوډپاره ددې چې تاسو ټول

مِنۡ قَبۡلُ | وَلِتَبۡلُغُوۡۤا | اَجَلًا مُّسَمًّى | وَّلَعَلَّكُمۡ | تَعۡقِلُوۡنَ ﴿٦٧﴾

مخکښې ددې نه | اوچې اورسئ تاسو |نيټې مقررې ته |اوډپاره ددې چې تاسو |دعقل نه کار واخلئ

خپلې مقررې نيټې ته اورسيږئ| اوچې دپوهې نه کار واخلئ

هُوَ الَّذِىۡ | يُحۡىٖ | وَيُمِيۡتُ ۚ | فَاِذَا قَضٰۤى

هغه هغه ذات دې | چې ژوندی کول کوی | او مړه کول کوی | پس هر کله چې فيصله اوکړی هغه

الله ﷻ هغه ذات دې| چې ژوندی کول او مړه کول کوی| کله چې د يوکار د کولو اراده اوکړی

(1) ٤٠/غافر:١٤.
(2) ١/الفاتحة:١.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَمْرًا | فَإِنَّمَا | يَقُولُ | لَهُ | كُنْ | فَيَكُونُ ﴿٦٨﴾ |
| دیو کار | پس بیشکه | چي واني | هغه کار ته | شه | پس شي هغه |
| نو هغې ته اووائي موجود شه | | | | | نو هغه موجود شي |

قوله تعالى: قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ

مشركانو اعلان د غير الله نه براءت او په دې باندې دليل:- الله تعالى فرمائي اې نبي ﷺ دې مشركانوته اووايه چه الله تعالى دهرچادعبادت نه بغيرد هغه نه خپل مخلوق منع کړي دي د هغه نه بغيرليل څوك د عبادت لائق نشته. ددې د ټولونه لوئ دليل د دې نه روستوراتلونکې آيت دې کوم کښې چه فرمانيلي الله ﷻ وحده لاشريك له تاسو د خاورې نه بيا دنطفې نه بيا دويني د چکې نه پيداکړي ني.هم هغه د موردخيټې نه دماشوم په شکل کښې راوويستلې.دا ټول حالات هم هغه بدلول. بيا هم هغه د وړوکوالي نه ترځوانئې پورې رارسولې. هم هغه به دې د ځوانئې نه تربوډاوالي پورې رسوي. دا ټول کارونه صرف په يوحکم تقدير او تدبيرسره کيږي. بياڅومره بده خبره ده چه هغه سره د نورو هم عبادت اوکړې شي. بعضې ددې نه وړاندې وفات کيږي يعنې په کچه پرده کښې پريوځي حمل ساقط شي.بعضې په وړوکوالي کښې بعضې په ځوانئې کښې اوبعضې په ډير عمر کښې د بوډاوالي نه وړاندې مره کيږي. قرآن پاك کښې يوبل ځاې کښې ارشاد دې ﴿وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ۖ وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّىٰ وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا ۚ وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ ﴿٥﴾﴾[1] يعنې مونږ ني دموريه خيټه کښې راحصاروو ترکومې چه غواړو.دلته بل ارشاددې چه تاسو خپل مقرروخت ته اورسئی اوتاسو سوچ اوفکراوکړئ.يعنې دخپل ځان د دې حالاتو په بدلون سره تاسو ايمان راوړئ چه د دې دنيا نه پس هم تاسو ته په نوی ژوند کښې يوه ورځ اودريدل دي. هم هغه ژوندې کونکې اومړکونکې دې. د هغه نه بغيرڅوك هم په مرګ اوژوندباندې قادرنه دی. دهغه يوحکم يوه فيصله نه څه مقررول اونه اراده ماتونکې څوك شته. څه چه هغه غواړي هم هغه کيږي اوڅه چه هغه نه غواړي ناممکن دی چه هغه اوشي.

| | | |
|---|---|---|
| أَلَمْ تَرَ | إِلَى الَّذِينَ | |
| آيا تا اونه کتل | هغه کسانوته | |
| آيا ته هغې خلقو ته نه ګورې | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُجَادِلُونَ | فِي آيَاتِ اللَّهِ | أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ ﴿٦٩﴾ | الَّذِينَ |
| چې جګړې کوی | په آيتونو دالله کښې | دکوم ځاې نه دوکه کولې کيږي | هغه کسان |
| چې دالله ﷻ دايتونو په باره کښې جګړې کوی | | دوئ کوم طرف ته اړولې شي | هغه څوك چې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| كَذَّبُوا | بِالْكِتَابِ | وَبِمَا | أَرْسَلْنَا | بِهِ رُسُلَنَا ۛ |
| چې دروغ ني اوګڼړو کتاب | | او هغه | چې ليږلي دی مونږه | په هغې سره رسولان خپل |
| داکتاب ني اوکوم (کتابونه او حکمونه) چې مونږ دنورو پيغمبرانو په لاس راليږلي دی ني دروغ اوګڼړل | | | | |

[1] ۲۲/الحج: ۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ۝٧٠ | إِذِ الْأَغْلَٰلُ | فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ | وَالسَّلَٰسِلُ ط |
| پس زر به پَته اولِری دویٔ ته | کله چي به پتئ | په ځتونو ددویٔ کنبی وی | او زنځیرونه |

نو ډیر زر به په پوهه شی | چې ځتونو کنبې ورته تیزندیٔ اوزنځیرونه واچولې شی

| | | | |
|---|---|---|---|
| يُسْحَبُونَ ۝٧١ | فِى الْحَمِيمِ ۵ | ثُمَّ فِى النَّارِ | يُسْجَرُونَ ۝٧٢ |
| چي راخکلي کیږی به | په گرمو اوبو کنبی | بیا به په وور کنبی | ورغورزولي کیږی |

ویشیدلو اوبو ته به راښکلې شی | .........بیا به اور ته ورغورزولي شی

| | | | |
|---|---|---|---|
| ثُمَّ قِيلَ | لَهُمْ | أَيْنَمَا | كُنتُمْ | تُشْرِكُونَ ۝٧٣ |
| بیا به اوونیلې شی | دویٔ ته | کوم ځاني دی هغه | چي ویٔ تاسو | چي شریکول به تاسو |

بیا به تري تپوس اوشی | چې (نن) د الله تعالی نه سوا ستاسو شریکان څهٔ شول (کوم چي موجوړول)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِن دُونِ اللَّهِ ط | قَالُوا | ضَلُّوا عَنَّا | بَل لَّمْ نَكُن | نَّدْعُوا |
| ماسوا دالله نه | اوبه وائی دویٔ | ورك شول زمونږ نه | بلکه نهٔ وو مونږ | چي بللو به مو |

. |............ هغوئ به وائی چې ټول رانه ورک شول| بلکه مونږ خوبه ددې نه وړاندې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِن قَبْلُ | شَيْـًٔا ط | كَذَٰلِكَ | يُضِلُّ اللَّهُ | الْكَٰفِرِينَ ۝٧٤ | ذَٰلِكُم |
| مخکنبی ددې نه | څه څیز | درانگې به | گمراهه کوی الله | کافران | دا انجام ستاسو |

دبل هیڅا عبادت نه کولو | دغه شان الله ﷻ کافران په گمراهئ کنبې ساتی | دا د دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بِمَا | كُنتُمْ | تَفْرَحُونَ | فِى الْأَرْضِ | بِغَيْرِ الْحَقِّ |
| په سبب دهغې شو | چي ویٔ تاسو | چي خوشحالي به مو کوله | په زمکه کنبی | په ناحقه سره |

خبرې بدله ده | چې تاسو به په دنیا کنبې په ناحقه خوشحالئ کولې | او دا دهغې بدله ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَبِمَا | كُنتُمْ | تَمْرَحُونَ ۝٧٥ | ادْخُلُوٓا | أَبْوَٰبَ | جَهَنَّمَ |
| او په سبب دهغې | چي ویٔ تاسو | چي غرور به مو کولو | (اوس) ننوزئ | دروازو | ددوزخ ته |

چې تاسو به ځان ته خوښ وې |............. اوس د جهنم دروازې ته ورننوځئ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| خَٰلِدِينَ | فِيهَا ج | فَبِئْسَ | مَثْوَى | الْمُتَكَبِّرِينَ ۝٧٦ |
| همیشه به یئ په هغې کنبی | پس ډیر خراب دی | ځائې | دتکبر کونکو خلقو | |

همیشه به په کنبې پراته یئ | دغه متکبرو خلقو د استوگنې ځائې ډیر خراب دی |

**قوله تعالی:: أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَٰدِلُونَ فِىٓ ءَايَٰتِ اللَّهِ ط**

**د انبیاء کرامو دتکذیب کونکو عبرتناک انجام:** الله تعالی فرمائی اې محمد ﷺ تاته په دې خلقو تعجب نه ښکاری کوم چه دالله تعالی خبرې دروغ گنړی اودخپل باطل په وجه دحق نه اوړی. ته نه گورې چه د دوی عقلونه څنگه وهلې شوی دی اونیکی پریږدی اوبدئی پورې ځنگه کلك اینختې دی. بیا دا بد کرداره کافران ویروی چه هدایت اوښیکړه دروغ گنړونکی دکلام الله اوکلام الرسول منکران به خپل انجام هم اووینی. لکه چه اوفرمائیلې شو دتکذیب کونکود پاره ویل دې په ستونوکنبې به نی طوقونه

اوزنځيرونه پراته وی اود دوزخ داروغه به ئې په راښکلوراښکلو ګرځوی کله په حميم کښې اوکله په جحيم کښې. په ګرمو خوټکيدلو اوبوکښې به راښکلې کيږی اود دوزخ په اُورکښې به سوزولې کيږی.
لکه چه بل ځائ ارشاد دې هغه دوزخ کوم چه به ګناهګارانوخلقو دروغ ګڼړلو اوس دې دوی په دې کښې اود اُور په شان ګرمو اوبوکښې وهلې وهلې پريشانه ګرځی. په نوروآياتونوکښې دهغوی د زقوم خوړلو اوګرمې اوبه څکل بيان شوی دی. فرمائی﴿ ثُمَّ اِنَّ مَرۡجِعَهُمۡ لَاِ۠لَى الۡجَحِيۡمِ۝﴾[1] بيا دهغوی تګ خو هم د دوزخ طرف ته دې.په سورت واقعه کښې د اصحاب شمال ذکر کولو سره فرمائی دګس لاس والا څومره خراب دی اوهغوی په اُورکښې دی اوګرمې اوبه او د تور لوګې په سوری کښې به وی چه نه يخ دې اونه فائده مند. وړاندې فرمائی: اې دهوکه شوی دروغ وِيونکو ترخه ونه به خورئی هم په دې سره به خپله خيټه ډکوئی بيا به پدې باندې سوزيدلې سوزيدلې ګرمې اوبه څکئی اوداسې لکه چه تنده وهلې اوښ ئې څکی.نن به دانصاف په ورځ دهغوی دغه ميلمستيا کيږی.بل ځائ ارشاددې ﴿اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوۡمِ﴾ ([2])
يقينًا دګناهګارانوخوراك دزقوم ونه ده چه دويلې شوې تانبې په شان دد چه په خيټوکښې به خوټکيږی لکه د تيزوګرمو اوبو. دا اونيسئ اود دوزخ مينځ ته ئې په ديکو ديکواورسوئی. بيا د دوی په سرونو باندې د تيزګرمو سرو کړو اوبوعذاب راواړوئی. واخله اوڅکه ته ډير عزت مند اوډير د تعظيم اوتکريم والا سړی وې. هم دا هغه دی کوم سره چه ستا شك اوشبه وه. مطلب داچه يوطرف ته به ته داتکليفونه برداشت کوې د کوم بيان چه اوشو اوبل طرف ته به هغوی ذليل خواړول توړولود پاره د ټوقومسخرو په توګه غصې اوړتې په توګه د سپکاوی اوذلت په توګه هغوی ته خبرې کولې شی لکه چه بيان شوې.
**په جهنم کښې تورې وريځې او دهغې باران**::د ابن ابی حاتم په يوغريب مرفوع حديث کښې دی چه د يو طرف نه به توره اوريځ راوچته شی کومه چه به دوزخيان اووينی نودهغوی نه به تپوس اوکړی تاسو څه غواړئی؟ هغوی چه اُوريځې اُووينی نود دنياپه انداز باندې به وائی چه دا اووريږی نود دې نه به طوق زنځيرونه اود اور سروټکې راووريږی.([3])د کوم شغلې چه به هغوی سوزوی اولولپه کوی اوهغه طوق او زنځيرونه به دهغوی په طوق اوزنځيرونوکښې نور هم زياتوالې اوکړی.بيا به هغوی ته وئيلې شی چه وائی کنه په دنياکښې چه مود کوم خلقو عبادتونه کول هغه ټول نن کوم ځائی دی؟ هغوی ستاسوامداد ته ولې نه راځی؟هغوی ولې تاسو د بې وسئ اوخراب حالت کښې پريخودئی؟هغوی به جواب ورکړی چه اوهغوی خونن نه ښکاری هغوی خو وو بې فائدې. بيا به دوی ته څه خيال راشی او وائی به نه مونږ خودهغوی عبادت چرې هم نه وو کړې.لکه چه بل آيت کښې دی کله چه دوی څه جوړول کوی اوجوړ ترې نه شی نو صفا انکار به اوکړی اودروغ به اووائی چه ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشۡرِكِيۡنَ۝﴾([4])اې الله زمونږ دې ستاقسم وی مونږمشرکان نه وو. داکافران به داسې په فضولياتوکښې ورك وی دوی ته به فرښتې وائی دابدله ده دهغې چه په دنياکښې به بغيرد څه وجه تاويدئی اوګرځيدئی اوتکبرلوئې باندې مو ملا تړلې وه اوس راشئ د دوزخ په دې دروازوکښې ورداخل شئ اوس هميشه هم دلته پراته اوسئ. ستاسو غوندې د مغروره کسانود پاره هم دابدمنزل اوخراب ځائ د اوسيدو دې. څومره کبر چه موکولوهم دومره به نن ذليل اوخوار جوړيږئی چه څومره بره ختئی اوهم دومره به ښکته راپريوځئی. والله اعلم.

[1] ۳۷/الصافات:٦٧.
[2] ٤٤/الدخان:٤٣. الخ.
[3] ابن ابی حاتم
[4] ٦/الانعام:٢٣.

فَاصْبِرْ

| پس صبر کوه

| نو (اي نبي ﷺ) ته صبر کوه

اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ ۚ فَاِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِيْ نَعِدُهُمْ

بیشکه وعده دالله | حقه ده | پس که اوښایو مونږ تاته | بعضې هغه عذاب | د کوم نه چې یروو مونږ هغوئ

بیشکه دالله وعده ریښتوني ده | نو مونږ چې دوئ سره د کومې وعده کوو | که دهغې څه لړه

اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيْنَا يُرْجَعُوْنَ ۝ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا

یا وفات کړو مونږ تالره | پس مونږ ته به | واپس کړې کیږی هغوئ | او لیږلی دی مونږه |

حصه تاته اوښایو ایا تا (دهغې دښکاره کیدو نه وړاندې) وفات کړو | نو (په هرصورت) ټول به مونږ ته واپس کیږی

رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ مِنْهُمْ مَّنْ قَصَصْنَا

ډیر رسولان | مخکښې ستا نه | دهغوئ نه ځینې هغه څوك دي | چې حالات ئې بیان کړی دی مونږه

او مونږ ستا نه وړاندې ډیر پیغمبران لیږلي وو | چې دبعضو قصې مونږ تاته بیان کړی دی

عَلَيْكَ وَمِنْهُمْ مَّنْ لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ ط

په تاباندې | او ځینې دهغوئ نه هغه څوك دی | چې بیان نۀ کړل مونږه حالات دهغوئ | په تاباندې

............ | او د بعضو قصې مونږ تاته نه دی بیان کړې |

وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ فَاِذَا جَآءَ

اونۀ وو طاقت | یو رسول لره | چې راوړی یوه نښه | مګر | په اجازت دالله | پس هر کله چې | راغلې

او هر پیغمبر چې یوه نښه خودلې ده | نو بس دالله ﷻ په اذن ئې خودلې ده | نو څه چې دالله ﷻ

اَمْرُ اللّٰهِ قُضِيَ بِالْحَقِّ وَخَسِرَ هُنَالِكَ

حکم دالله | نو فیصله اوکړې شوه | په حقه | او په نقصان کښې پریوتل | په هغه وخت کښې

حکم راشي | نو سمه فیصله به اوشي | او هلته به باطل پرست به تاوانیان پاتې شي

الْمُبْطِلُوْنَ ۝ اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ

| غلط کاره خلق | الله هغه ذات دی | چې جوړ ئې کړل ستاسو دپاره | ګرځیدونکې ځناور

............ | الله ﷻ هغه ذات دې چې ستاسو دپاره ئې (قسم قسم) څاروی پیدا کړی دی

لِتَرْكَبُوْا مِنْهَا وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ۝ وَلَكُمْ

چې سورلي اوکړئ | په بعضو دهغې نه | او بعضې دهغې نه | خورئ تاسو | او دی ستاسو دپاره

په هغې کښې په بعضو باندې سورلی کوئ | او د بعضو نه خوراکونه کوئ | او ستاسو دپاره

فِيْهَا مَنَافِعُ وَلِتَبْلُغُوْا عَلَيْهَا حَاجَةً فِيْ صُدُوْرِكُمْ

په هغې کښې | فائیدې ډیرې | او چې اورسئ تاسو | په هغې باندې | داسې حاجت ته | چې په سینوس ستاسو کښې دی

په کښې نورې هم ډیرې فائدې شته | او دې دپاره ئې پیدا کړی دی چې دخپلو زړونو مرادونه پرې ترسره کړئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَعَلَيْهَا | وَعَلَى الْفُلْكِ | تُحْمَلُوْنَ ﴿٨٠﴾ | وَيُرِيْكُمْ |
| او په هغوئ باندې | او په کشتئ باندې | تاسو سوارهٔ گرزولې کيږې | او هغه ښائي تاسو ته |
| اوپه دغه خاروؤ او بيړو باندې تاسو سورلى کوئ \| اوهغه (الله تعالى) درته دخپل وحدانيت نور قدرتونه | | | |
| اٰيٰتِهٖ ۖ | فَاَيَّ اٰيٰتِ اللّٰهِ | تُنْكِرُوْنَ ﴿٨١﴾ | |
| نښې خپلې \| نو دکومو نښو دالله نه \| به تاسو انکار کوئ \| | | | |
| هم ښائي \| نو تاسو به دالله د وحدانيت دکومو کومو نښونه انکار کوئ \| | | | |

**قوله تعالى:: فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ**

**صبراوکړئ فتح به هم ستاسو وي:-** الله تعالى خپل رسول ﷺ ته دصبر حکم ورکوی څوك چه ستا نه منى تادروغ گڼړى ته دهغوی په تکليفونوباندې صبر اوبرداشت کوه په دې تولو باندې به فتح اونصرت هم تاته ملاويږى. آخر انجام به هم ستا په حق کښې بهتروى. ته اوستا منونکى به په تولـه دنياباندې غالب راځئ اوآخرت خو صرف هم ستاسودې نوياخوبه مونږ د خپلې وعدې څه څيزونه تاته په دنيا کښې ستاپه ژوند کښې دراوښايو اوهم داسې شوی هم دې. د بدر په ورځ باندې د کفر زورختم شو اوسرئ ورله مات کړو. دقريشو لوئ لوئ سرداران مړه کړې شو. آخر مکه فتح شوه اوهغوی د دنيانه رخصت نه ووترکومې چه تول جزيره عرب دهغوی دحکم لاندې شوې نه وو. دحضور ﷺ دښمنان د هغوی دسترگو په وړاندې خواراوذليل شوی نه وو اودحضور ﷺ سترگې الله تعالى يخې کړې نه وې. اوکه څړې مونږ تا واخلو هم نودهغوی واپس کيدل خو هم زمونږ طرف ته دی مونږ به هغوی د آخرت په دردناك عذاب کښې راگيرکړو. بيا د نورې تسلئ په توگه فرمائيلې شی تاته وړاندې هم مونږ ډير رسولان ليگلې دی په کوموکښې چه د بعضو حالات مونږ تاته بيان کړل اودبعضو قصې مونږ بيان کړی هم نه دی لکه چه په سورت نساء کښې هم فرمائيلی شوی دی نوچه د کومو قصې ذکردی هغه گوره چه د هغوی قوم سره څه اوشو. اودبعضو واقعات مونږ بيان کړی هم نه دی هغه ددې په نسبت سره ډير زيات دی. کوم چه مونږ دسورت نساء دتفسيرپه موقعه بيان کړی دی. ولله الحمد والمنة. بيا فرمائی چه ناممکن دی چه يو رسول دخپلې مرضئ معجزې اودعادت نه خلاف خبرې اوښائی مگردالله ﷻ د حکم کيدونه پس څکه چه درسول سره خو هيڅ هم په قبضه کښې نشته. اوچه کله دالله ﷻ عذاب راشی بيا تکذيب کونکی او ترديدکونکی کافران نه شی بچ کيدې. مؤمنان خلاصې بياموممی اوباطل پرست اوباطل کار تباه کيږی.

**قوله تعالى:: جَعَلَ لَكُمُ الْاَنْعَامَ**

**(انعام)** يعنی اوښ غوا چيلئ الله تعالى د انسان د پاره قسم قسم د نفع د پاره پيداکړی دی د سورلئ په کارراځی خوړلې کيږی. اوښ دسورلئ په کارهم راځی اود خوړلوپه کارهم، پڼی هم ورکوی بوج هم اوچتوی اود لرې لرې سفرې په آسانئ سره کوی. غواد غوښې خوړلوپه کارهم ارځی اوپڼی هم ورکوی يوه هم کوی. د چيلئ پڼی هم څکلی او غوښه ئې هم خورلی. بيا د دې وينسته په شلو کارونوکښې په کار راځی لکه چه په سورت انعام او سورت نحل کښې بيان تيرشوی دې. دلته هم دا منافع د انعام په توگه شميرلې شوی دی. په دنيا کښې اود دې په گوټ گوټ کښې اود کائناتوپه يوه يوه ذره کښې او پخپله ستاسوپه ځانونوکښې دالله ﷻ نښې موجود دی. رښتياخودادی چه دهغه په بې شميره نښو کښې ديوې نه هم په صحيح معنوکښې انکارنه شی کيدلې اوبلکه دايوه خبره ده چه په غړيدلو سترگو باندې پټئ کيږدی.

أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ
| ایا نو اونه ګرځیدل دوئ | په زمکه کښې
| ایا دوئ په زمکه کښې ګرځیدلي نه دي

فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ كَانُوا
چې کتلی ئې وې | چې څرنګې وو | انجام دهغه کسانو | چې مخکښې ددوئ نه وو | وو هغوئ |
چې دائې کتلی وې | چې ددوئ نه دوړاندینو خلقو انجام څه شو ؟| هغوئ خو ددوئ نه

أَكْثَرَ مِنْهُمْ وَأَشَدَّ قُوَّةً وَآثَارًا
زیات په شماره کښې | ددوئ نه | او زیات سخت وو | په قوت کښې | او په اثراتو پرینښودلو کښې |
ډیر وو | او په طاقت کښې ترې نه زیات وو | ............... او دزمکې په مخ ئې ډیرې

فِي الْأَرْضِ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿۸۲﴾
په زمکه کښې | پس هیڅ دفع نه کړل | ددوئ نه | هغې چې وو دوئ | چې کول به ئې |
نخښې پرینښودې وې | نو د هغوئ دا ګټه هیڅ په کار رانغله

فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَرِحُوا بِمَا
پس هر کله چې راغلل هغوئ ته | رسولان دهغوئ | دواضحه نښو سره | نو خوشحاله شو | په هغې |
کله چې ورته پیغمبرانو (زما په وحدانیت او خپل رسالت) ښکاره نخښې راوړې نو هغوئ په خپل

عِندَهُم مِّنَ الْعِلْمِ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا
چې دهغوئ سره وو | دعلم نه | او چاپیره شو | په هغوئ | هغه عذاب | چې وو هغوئ |
علم باندې خوشحالي شروع کړه | او په کوم عذاب پورې چې ئې توقې کولې

بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿۸۳﴾ فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا
په هغوئ پورې | چې توقې به ئې کولې | پس هر کله چې | اولیدو هغوئ | عذاب زمونږ |
هغه ترې نه راتاؤ شو | ........................ نو کله چې دغه خلقو زمونږ عذاب اولیدو

قَالُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ وَكَفَرْنَا بِمَا
نو اوونیل هغوئ | ایمان راوړو مونږ | په الله باندې | یوازې | او انکار کوؤ مونږ | په هغې |
نو دائې اوونیل چې مونږ په یو الله ﷻ باندې ایمان راوړې دې | او کوم شریکان

كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ ﴿۸۴﴾ فَلَمْ يَكُ يَنفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ
چې وو مونږ | دهغه سره شریك کونکی | پس نه وو | چې نفع اورسوی دوئ ته | ایمان ددوئ |
چې مونږ جوړول د هغوئ نه ویزاره یو | خو څه وخت چې هغوئ زمونږ عذاب اولیدلو نو دغه ایمان

لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا سُنَّتَ اللَّهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ
هر کله چې اولیدو هغوئ | عذاب زمونږ | دا طریقه دالله ده | هغه | چې تیره شوی ده |
ورته هیڅ فائده ورنکړه | دا د الله ﷻ عام قانون دې چې دبندګانو په

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِيْ عِبَادِهٖ | وَخَسِرَ | هُنَالِكَ | الْكٰفِرُوْنَ |
| په بندګانو دهغه کښې | او په تاوان کښې راغلل | په دغه وخت کښې | کافران |

باره کښې د پخوا راروان دي | اوپه هغه وخت کښې کافران تاوانيان پاتې شول

**قوله تعالى:: اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ**

**موجوده مشرکانو ته خبرداري:**-الله ﷻ دهغه وړاندينوخلقو خبرورکوی کومو چه دې نه وړاندې رسولان دروغ ګڼلي وو. دې سره بناني چه هغوی د دې نتيجه څه اوموندله. سره ددې چه هغوی طاقتور وو ډير وو په زمکه کښې نښې نښانې اوعمارتونه ئې هم ډير لرل اوډير مالداره وو خوهيڅ څيز دهغوی په کاررانغلوچاهم دالله ﷻ عذاب لرې نه کړو نه ئې کم کړو نه ئې اخواکړو.اودوی خووهم دغرقيدو قابل. ځکه چه کله دالله ﷻ قاصد هغوی له صفاصفا دليلونه اوحجتونه اوښکاره معجزې پاك تعليمات راوړل نوهغوی يونظرهم اونه کتل. دخپل ځان په علومو باندې مغروره شو اود رسولانودتعليم ئې سپکاوې اوکړو.وئيل ئې هم مونږډيرعالمان يوحساب کتاب عذاب اوثواب هيڅ څيز نشته. خپل جهالت ئې علم اوګڼلوبياخود الله تعالى هغه عذاب راغلو چه دهغوی نه هيڅ هم جوړنه شو اوچه کوم څيز ئې دروغ ګڼلواوېه څه به ئې مخ پوزه چونړله اوکوموپورې چه به ئې توقې مسخرې کولې هم هغې هغوی تباه برباد کړل ختم ئې کړل لاندې باندې ئې کړل د مالوچوپه شان ئې اووېشتل اود بوسوپه شان ئې والوزول.

**قوله تعالى:: فَلَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا**

**عذاب کتلوسره د ايمان راوړو څه فائده؟::**د الله ﷻ عذابونه ئې راتلونکې بلکه راغلې ليدلوسره د ايمان اقرار اوکړو اوتوحيدئې هم اومنلو اود غيرالله نه ئې صفا انکارهم اوکړو خودهغه وخت نه توبه قبوله ده اونه دهغوی اسلام مسلم. فرعون هم په غرقيدوکښې وئيلې ووچه زه اسلام قبلوم. دالله تعالى دطرف نه جواب ملاوېږي چه اوس ايمان راوړل بې فائدې دی ډير نافرمانئې او شيطانئې دې کړې دی. موسى ﷺ هم د دې سرکش دپاره هم دادعاکړې وه چه اې الله د فرعونيانو زړونه :ومره سخت کړې چه د دردناك عذاب د ليدلوپورې هغوی ته ايمان نصيب مه کړې. نودلته هم د الله تعالى فرمان دې چه عذابونه ليدلوسره دهغوی د ايمان قبلولوهغوی ته هيڅ فائده اونه رسوله. دا حکم د الله تعالى عام دې. ځوك هم چه عذابونه اوګوري اوتوبه اوکړي د هغه توبه قبوله نه ده. حديث شريف کښې دی د غرغرې نه اول پورې توبه قبوله ده([1])کله چه سا په سينه کښې اونښته روح حلق ته اورسيده فرښتې دې اوکتلې نودې وخت کښې هيڅ توبه نشته. د دې د پاره په آخره کښې ارشاد اوفرمائيلو چه کافران په تاوان او نقصان کښې دی.

**(الحمدلله)** دسورت مؤمن تفسير ختم شو.

| اياتونه | | سورة حٰمٓ السجدة مکيه وهي اربع وخمسون اٰية وست رکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۵۴ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ۶ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حٰمٓ ① | تَنْزِيْلٌ | مِّنَ الرَّحْمٰنِ | الرَّحِيْمِ ② | كِتٰبٌ |
| حٰمٓ | نازل کړې شوې دې | دطرفه دبښونکې | مهربانه خدائې نه | يو داسې کتاب دې |

حم داکتاب درحم کونکې مهربان (الله ﷻ) د طرفه نازل شوې دې | دا يو داسې کتاب دې

[1]) ترمذى كتاب الدعوات باب ان الله يقبل توبة....: ۳۵۳۷وهو حسن،ابن ماجه:۴۲۵۳

فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ

چې واضحه بیان کړې شوې دی | آیتونه ددې | قرآن دی | دعربئ ژبې | دپاره دهغه قوم |

چې ایاتونه ئې واضحه بیان شوې دی | داقران پاک په عربئ ژه کښې دې | هغه خلقو

يَّعْلَمُوْنَ ۙ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ۚ فَاَعْرَضَ اَكْثَرُهُمْ فَهُمْ

چې هغوئ علم لری | زیرې ورکونکې دې | او یرونکې دې | پس مخ واړوو | زیاتو ددوئ | پس دوئ

دپاره چې پوهیږی|(دقران پاک) زیرې ورکونکې دې|او(دعذاب نه) ویرنکې دې| خو پدوئ کښې زیاتو خلقو ترې

لَا يَسْمَعُوْنَ ۝ وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ مِّمَّا

غوږ نه ږدی خبری ته | اووائی | چې زړونه مونږه | په پردو کښې دی | دهغې نه |

مخ اوګرخولو| اودوئ نه اوری| او(کافرانو) اووئیل چې زمونږ زړونه د هغه خبرې نه په پردو کښې

تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ وَفِيْٓ اٰذَانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْۢ بَيْنِنَا

چې تاسو رابلئ مونږه | هغې ته | او په غوږونو زمونږ کښې | دروندوالې دې | او په منځ زمونږ |

دی کوم طرف ته چې تاسو مونږ رابلئ| اوزمونږ په غوږونو کښې کوندوالې دې

وَبَيْنِكَ حِجَابٌ فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ ۝

او په منځ ستاسو کښې | یوه پرده ده | نو ته خپل کار کوه | بیشکه مونږه خپل کار کونکې یو |

اوستا او زمونږ په مینځ کښې د زړونوپرده ده |نو ته خپل کار کوه| اومونږبه خپل کارونه کوو

**قوله تعالی:: تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۝**

**د قران پاک منکرینو ته رټونه:-** فرمائي چه دا عربی قرآن پاك د رب رحمن نازل کړې شوې دې لکه چه بل آیت کښې ارشاد دې ستادرب په حکم سره روح الامین په حق سره نازل کړې دې.بل آیت کښې دی روح الامین ستاپه زړه باندې دا خکه نازل کړی دې چه ته خلقوته خبرورکونکې جوړشې.د دې آیاتونه په تفصیل سره دی د دې معنې ښکاره دی احکام ئې مضبوط دی اوالفاظ ئې واضح اوآسان دی. بل آیت کښې دی ﴿كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ ۝﴾ ([1])دا کتاب دې چه د دې آیاتونه محکم او مفصل دی داکلام دې دخبیراوحکیم الله تعالی د لفظ په اعتبارسره معجز اود معنې په اعتبارسره هم معجز. باطل نه د دې وړاندې راتلې شي اونه روستونه.دحکیم اوحمیدرب د طرف نه نازل کړې شوې دې. د دې بیان وضاحت باندې دعلم والا پوهیږی.دایوطرف ته مؤمنانوته زیرې ورکوی بل طرف ته مجرمان ویروی اوکافران ویروی.سره ددې دومره خوبیانوبیاهم اکثروقریشو مخ اړولې ګرځی او په غوږونوکښې ئې بوجې ورکړی دی. بیاد هغوی نورکبر ته اوګوره چه پخپله وائي ستا په رابللوسره زمونږ زړونه په پردوکښې دی اودا تاچه څه راوړی دی دهغې نه خومونږ کانړه یو.اوستا اوزمونږ په مینځ کښې یوه فاصله ده. ستاخبرې نه زمونږ په پوهه کښې راځی اونه زمونږ په عقل کښې ځائ کیدې شی. څه ته په خپله طریقه باندې عمل کوه اومونږ خپل طریقه کارهیڅ کله هم نه پریږدو.نامکمن دی چه مونږ ستاسو اومنو.مسندعبدبن حمید کښې دجابربن عبدالله نه روایت دې یوه ورځ قریش راجمع شو اوبه خپلو

[1]) ۱۱/هود:۱.

کښې نې غونډه اوکړه چه په جادو کهانت شعراوشاعرنې کښې څوك وړاندې وی هغه راولئې چه دې سړی له لاړشو (یعنی حضورﷺ) چاچه زمونږ په ډله کښې جدائی اچولې ده اوزمونږ په کارکښې خرابې اچولې دې او زمونږ په دین کښې عیبونه لټول شروع کړی دی چه هغه ده سره مناظره اوکړی اوده ته ماتې ورکړی اوېې جوابه نې کړی. ټولوونیل چه داسې سړې خو په مونږ کښې دعتبه بن ربیعه نه بغیر بل څوك نشته. دا ټول یوځائ شو اوعتبه له راغلل اوخپل خواهش نې ښکاره کړو. هغه د قوم خبره اومنله اوتیارشو اوحضورﷺ له راغلو. ونې ونیل اې محمدﷺ دا اوښایه چه ته ښه نې که عبدالله؟ (یعنی دحضورﷺ پلار) حضورﷺ هیڅ جواب ورنه کړو.ښه د دویم سوال تپوس نې اوکړو چه ښه ده جواب راکړه چه ته ښه نې که ستا نیکه عبدالمطلب؟حضورﷺ په دې باندې هم خاموش پاتې شو هغه ونیل واوره که ته خپل پلار نیکه ښه ګنړې نو تاته خو معلومه ده چه هغوی هم د دې معبودانو عبادت کولو دکوموچه مونږ عبادت کوو اود چا چه ته عیبونه لټوې. اوکه ته خپل ځان د هغوی نه ښه ګنړې نو خبرې کوه مونږ هم ستا خبرې اورو. د الله تعالی قسم چه په دنیاکښې یوانسان هم د خپل قوم د پاره ستانه نقصان رسونکې نه دې پیداشوې. تازمونږ ډله ماته کړه تازمونږ اتفاق په بې اتفاقئی سره بدل کړو.تا زمونږدین عیب دار جوړکړو اوپه هغې کښې دې بدی راویستله. تا په ټولوعربوکښې مونږ رسوا او بدنام کړو.نن په هر ځائ کښې هم دا تذکره ده چه په قریشوکښې یوجادوګر دې په قریشوکښې یو کاهن دې.اوس خوصرف هم دا یوه خبره باقی پاتې ده چه په مونږ اوتاسوکښې مقابله وی اووسله را واخلواوهم داسې جنګ اوجدل شروع کړو اوته مونږ ټول فناکول غواړې. واوره که ستا د مال تمناوی نو واخله مونږ ټول به تا دومره مالدار جوړکړو چه په عربو کښې به بل ستا په شان مالدار نه وی. اوکه ستا دښځو شوق وی نوپه مونږ کښې چه دکوم یولورستاسو خوښه وی نواوښایه مونږ به یونه لس لس ودونه تاله اوکړو.دې ټولوخبروکولونه پس هغه لږه شان ساه واخسته نوحضورﷺ اوفرمائیل چه اوس دې بس اوونیل که نه؟هغه ونیل اوحضورﷺاوفرمائیل اوس زما واوره ﴿بسم الله﴾نې اولوستله اوهم ددې سورت تلاوت نې شروع کړواوتقریبا یوه نیمه رکوع﴿صٰعِقَةً مِّثْلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ﴾(۱)پورې تلاوت نې اوفرمائیلو. دومره اوریدو سره عتبه چغې کړې بس که بس که تاسره د دې نه سوا هیڅ نشته؟ حضورﷺ اوفرمائیل نه. اوس هغه ددې ځائ نه لاړو پاسیدو.دقریشو ګنړه دهغه په انتظاروه.هغوی کتو سره اوونیل وایه څه خبره اوشوه؟عتبه ونیل واورئی تاسو ټولوچه په یوخُل هغه ته څه ونیل ماخان له هغه ته هرڅه اوونیل. هغوی ونیل چه بیا هغه څه جواب هم درکړو؟ ونیل اوجواب خوئې راکړو خو په خدائی چه زه د هغه په یوټکی هم پوهه نه شوم. خودومره پوهه شوم چه هغه مونږ ټول د آسمانی عذاب نه اوویرولو کوم عذاب چه په عادیانو اوثمودیانو راغلې وو.هغوی ونیل خدائی دې تا اووهی یوسړې په عربی ژبه کښې کومه چه ستا خپله ژبه ده تاسره خبرې کوی اوته وائی چه زه هډو پوهه نه شوم چه هغه څه اوونیل. عتبه ونیل زه رښتیاوایم بغیردعذاب نه زه په بل هیڅ هم پوهه نه شوم(۲)بغوی هم داروایت راوړې دې په دې کښې دا هم دی چه کله حضورﷺ ددې آیت تلاوت اوکړو نوعتبه دحضورﷺپه خُله مبارکه باندې لاس کیخودواوحضورﷺ ته نې قسمونه ورکړه اورشته داری وریاده کړه.ددې ځائ نه اولته پښې لاړو کور کښې کیناستو اود قریشو سره نې ناسته پاسته پریخوده. په دې باندې ابوجهل ونیل قریشو زما خیال دې چه عتبه هم د محمدﷺ طرف ته ښکته شو اود هغه ځائ په خوراك څښاك کښې اخته شو هغه وو هم حاجت مند.ښه ده تاسو ماسره شئ زه هغه له ورځم هغه به زه ټیك کړم. هلته لاړو ونې ونیل چه

---

(۱) ۴۱/حم السجدة: ۱۱۳.

(۲) ابن ابی شیبه:۲۹۵/۱۴ وسنده حسن، مسندابی یعلی:۱۸۱۸، حاکم:۲۵۳/۲-۲۵۴، دلائل النبوة:۲۰۲/۲، مجمع الزوائد:۲۰/۶.

عتبه تادامونږ سره تګ راتګ اوناسته پاسته پریخوده د دې وجه خوصرف هم یوه معلومیږی چه ستا د هغه دسترخوان خوښ شو اوته هم د هغه طرف ته تیټ شوې. حاجت مندی خراب څیز دې. زما خیال دې چه مونږ په خپل مینځ کښې چنده کوو اوستا حالت به ټیك کړو دې د پاره چه د دغه مصیبت اوذلت نه ته خلاص شې. د دې نوی کور اوددې نوی مذهب تاته هیڅ ضرورت نشته. پدې باندې عتبه ډیر غصه شو اوونی وئیل زماد محمد ﷺ نه څه غرض دې؟ په الله تعالی قسم اوس خویه هغه سره بیاخبره هم اونه کړم اوتاسو زما متعلق داسې ذلیل خیالات ښکاره کوئی سره د دې چه تاسو ته معلومه ده چه په قریشوکښې زما نه زیات مالدار هیڅ څوك نشته. خبره صرف دا ده چه زه ستاسو په وینا هغه له لاړم ټوله قصه ئی واوروله او ډیرې خبرې نی اوکړې. زما په جواب کښې چه هغه کوم کلام اولوستلو والله نه خو هغه شعروو نه د کهانت کلام وو اونه جادو وغیره وو. هغه چه کله دې سورت لوستلو سره دې آیت ﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ﴾(۱)ته اورسیدلونومادهغه په خُله باندې لاس کیخودو او هغه ته مې رشتې اوخپلوئی وریادې کړې چه لله منع شه زه خوویریدلې ووم چه چرته هم په دې وخت په مونږ عذاب رانه شي اودا خو تاسو ټولوته معلومه ده چه محمد ﷺ دروغژن نه دې.

په سیرت ابن اسحاق کښې داواقعه په بله طریقه سره ده.پدې کښې دی چه د قریشو ګڼړه یوخل په مجنس کښې ناسته وه اوحضور ﷺ د خانه کعبه په یوګوټ کښې ناست وو. عتبه قریشو ته اووئیل که ستاسود ټولو مشوره وی نو زه به محمد ﷺ له لاړشم اوهغه به لږ شان پوهه کړم اوڅه لالچ به ورکړم. که هغه څه خبره قبوله کړی نومونږ به نی ورکړو اوهغه به د خپل کارنه بندکړو.داواقعه د هغه وخت ده چه حضرت حمزه ﷺ مسلمان شوې وو اودمسلمانانو شمیر معقول شوې وو اوهره ورځ به ئی ترقی کوله ټول قریش په دې باندې رضاشو.دې حضور ﷺ له راغلو اوونی وئیل ورازه ته د اوچت نسب نه نی ته زمونږ نه نی اوزمونږ د سترګوتور اود زړه ټکړه نی. افسوس تاخپل قوم له یوعجیبه او حیرانونکې څیز راوړوتاپه هغوی کښې بې اتفاقی واچوله.تادهغوی عقل مند بې وقوفان اوګڼړل. تاد هغوی د معبودانو عیبونه بیان کړل. تادهغوی دین ته خراب وئیل شروع کړل.تادهغوی مشرانواوبوډاګانوته کافران اووئیل.اوس واوره زه نن تاله یوې آخری او ډیرې اهمې فیصلې له راغلې یم. زه ډیر صورتونه پیش کوم په هغې کښې چه کوم ستا خوښ وی هغه قبول کړه اود الله تعالی د پاره دافتنه راغونډه کړه. حضور ﷺ اوفرمائیل چه ته څه وائې وایه زه نی اورم. هغه وئیل واوره که ستا د دې چال نه مطلب مال جمع کول وی نومونږ ټول به راجمع شو اوتاله به دومره مال درکړو چه تانه به ډیر مالدار په قریشوکښې هیڅ څوك هم نه وی.اوکه ستا اراده ددې نه دخپلې سردارئی وی نومونږ ټول په شریکه تا سردارمنو.اوکه ته بادشاه جوړیدل غواړې نومونږ به تاله ملك درکړو اومونږ دې رعایا جوړیدو ته تیاریواوکه په تاباندې څه د پیری وغیره اثر وی نو مونږ به خپل مال خرچ کړو اود ښه نه ښه طبیب او دم کونکی به راپیداکړو اوستا علاج به اوکړو. داسې کیږی چه بعضې وخت کښې تابع پیرې په خپل عامل باندې غالب کیږی نودغه شان د ده نه خلاصې حاصلولې شي. اوس عتبه لږ شان چپ شو نو حضور ﷺ اوفرمائیل خپل هر څه دې اووئیل؟وئیل او.حضور ﷺ اوفرمائیل اوس زماواوره.هغه متوجه شو.حضور ﷺ بسم الله اولوستله اود دې سورت تلاوت نی شروع کړو. عتبه ښه په ادب سره واوریده تردې چه حضور ﷺ د سجدې آیت اولوستلو اوسجده نی اوکړه بیائی اوفرمائیل ابوولید ما اووئیل اوس تاته اختیاردې. عتبه د دې ځای نه پاسیدو اوخپلو ملګروله لاړو. د هغه مخ ته په کتو هر یووئیل چه د عتبه حال بدل شوې دې ده نه نی تپوس اوکړو وایه څه خبره ده؟ هغه وئیل چه ماخوداسې کلام واوریدو چه والله د دې نه وړاندې مې نه دې اوریدلې.قریشو زما اومنئی اوزما دا تللې شوې خبره اومنئی هغه په خپلو خیالونوباندې پریږدئی

---

(۱) ٤١/حم السجدة:١٣.

مه موافقت کوئي او مه مخالفت. کومه دعوی چه د هغه ده په هغې کښې څه چه واني په هغې کښې ټول عرب د هغه مخالف دي هغوی خپل ټول طاقت د هغه په مقابله کښې خرچ کوي ياخو به هغه په دوی باندې غالب راشي نوتاسو به په آسانئ سره خلاص شئ يا به دوی په هغه غالب شي نود هغه ملك ته په ستاسو ملك وئيلې شي اود هغه عزت به ستاسو عزت وي اود ټولونه زيات به د هغه په نيز تاسو ډير مقبول ئې.دې اوريدوسره قريشو وئيل ابوالوليد په الله تعالی قسم چه محمد ﷺ په تاباندې جادو اوکړو. هغه جواب ورکړو چه کومه زما رائې وه هغه ما په آزادئ سره بيان کړه اوس تاسو ته دخپل فعل اختيار دې. (١)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | اِنَّمَآ اَنَا | بَشَرٌ | مِّثْلُكُمْ | يُوْحٰٓى | اِلَيَّ | اَنَّمَآ |
| ورته اووايه | بيشکه زهٔ | يو بشرم يم | په مثل ستاسو | وحی کيږي | ماته | چې بيشکه |
| رائې نبي ﷺ ته ورته اووايه چې زه خو هم ستا په شان بشر يم خو ماته دا وحی شوې ده | | | | | | |
| اِلٰهُكُمْ | اِلٰهٌ وَّاحِدٌ | فَاسْتَقِيْمُوْٓا | اِلَيْهِ | وَاسْتَغْفِرُوْهُ ؕ | | |
| معبود ستاسو | معبود يو دې | پس نيغ مخ اوګرزوئ | هغه ته | او بښنه اوغواړئ دهغه نه | | |
| چې ستاسو معبود يو دې نو دهغه حکم منلو ته تابعدار اوسئ اوبښنه ترې غواړئ | | | | | | |
| وَوَيْلٌ | لِّلْمُشْرِكِيْنَ ۙ﴿۶﴾ | الَّذِيْنَ | لَا يُؤْتُوْنَ | الزَّكٰوةَ | وَهُمْ | |
| اوهلاکت دې | دپاره دمشرکانو | هغه | چې نهٔ ورکوي | زکاة | او هغوئ | |
| اودمشرکانودپاره هلاکت دې ...............څوک چې زکوة نه ورکوي اود آخرت نه | | | | | | |
| بِالْاٰخِرَةِ | هُمْ | كٰفِرُوْنَ ﴿۷﴾ | اِنَّ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا | |
| په آخرت باندې | هغوئ | منکر دي | بيشکه هغه کسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل | |
| منکر وي بيشکه کومو خلقو چې ايمان راوړو اونيک عمل ئې اوکړو | | | | | | |
| الصّٰلِحٰتِ | لَهُمْ | اَجْرٌ | غَيْرُ مَمْنُوْنٍ ﴿۸﴾ ع | | | |
| نيك | دپاره دهغوئ | اجر دې | چې نهٔ دې بنديدونکې | | | |
| هغوئ دپاره داسې بدله مقرر ده چې هيڅ کله به ختمه نشي | | | | | | |

قوله تعالی: قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوْحٰٓى

دتوحيداورسالت بيان:: د الله ﷻ حکم کيږي چه د دې تکذيب کونکو مشرکانو په وړاندې اعلان اوکړه چه زه هم ستاسو په شان انسان يم ماته د الله تعالی د وحی په ذريعه حکم راکړې شوې دې چه ستاسو ټولومعبوديوالله ﷻ دې تاسوچه داګډوډاوډيرمعبودان جوړکړي ناست ئې داطريقه سراسرډګمراهئ ده. تاسوټول عبادتونه صرف هم د هغه يوالله تعالی دپاره په ځائ راوړئ اوتيك هم هغه شان څنګه چه د هغه درسول ﷺ په ذريعه تاسو ته معلومه شي اود خپلو وړاندينوګناهونونه توبه اوکړئ دهغې معافی غواړئ يقين اوکړئ چه الله تعالی سره شرك کونکي هلاکيدونکې دي څوك چه زکوة نه ورکوي. يعنی د ابن عباس ﷺ د قول مطابق د لااله الا الله ګواهي نه ورکوي. (٢)عکرمه رحمه الله هم دا فرمائي (١)قرآن

---

(١) بيهقي ل دلائل النبوة: ۲۰٤/۲ دلائل النبوة لابي نعيم: ۱۸۵.
(٢) الطبری: ۴۳۰/۲۱.

کریم کښې یو بل ځای کښې دی ﴿ قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّاهَا وَقَدْ خَابَ مَن دَسَّاهَا ﴾(۲)یعنی هغه خلاصې بیاموندلو چا چه خپل نفس پاك کړو اوهغه هلاك شو چاچه دا دباؤکړو.بل آیت کښې ارشاد دې ﴿ قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ ﴾(۳)یعنی هغه خلاصې بیاموندلو چاچه پاکوالې حاصل کړو اود خپل رب د نوم ذکر نې اوکړو بیانې مونځ اداکړو. بل ځای ارشاد دې ﴿ فَقُلْ هَل لَّكَ إِلَىٰ أَن تَزَكَّىٰ ﴾(۴)آیاستاد پاکیدو خیال شته؟ په دې آیاتونوکښې د زکوة نه مطلب نفس دبې هوده اخلاقو نه لرې کول دی.اود تولونه لوی او اول قسم د دې شرك نه پاکیدل دی.دغه شان په پورتنوآیاتونوکښې د زکوة نه ورکولونه توحید نه منل مراد دی. د مال زکوة ته زکوة په دې وجه وئیلې شی چه داد حرمت نه پاکوالې کوی اود زیاتوالی اود برکت اود مال دکثرت ذریعه جوړیږی.اودالله تعالی په لارکښې هغه ته د خرچ کولوتوفیق کیږی. خوامام سدی معاویه بن قره، قتاده اواکثرو مفسرینو رحمهم الله د دې معنی داکړې ده چه د مال زکوة نه اداکوی اوپه ظاهره هم دا معلومیږی.امام ابن جریر رحمه الله هم دې ته مختار وائی(۵)خودا قول تامل غواړی ځکه چه زکوة فرض کیږی په مدینه منوره کښې تلوسره په دویم کال دهجرت اودا آیت نازل شوې دې په مکه مکرمه کښې. د زیات نه زیات د دې تفسیرمنلوسره مونږ وئیلې شو چه د صدقې او زکوة د اصل حکم خود نبوت په شروع کښې وو لکه چه دالله تعالی فرمان دې﴿ وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ ۖ وَلَا تُسْرِفُوا ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ ﴾(۶) په کومه ورځ چه فصل کټ کوی نود هغې حق ورکوه.اوهغه زکوة د کوم نصاب اودکوم مقدار چه دالله تعالی نه مقرردې هغه په مدینه کښې مقررشوې دې.داقول داسې دې په کوم سره چه په دواړو خبروکښې تطبیق هم کیږی.پخپله مونځ ته اوګوره چه دنمر د راختلو اود نمردډوبیدلو نه اول دنبوت په شروع کښې فرض شوې وو خود معراج په شپه د هجرته نه دوه نیم کاله وړاندې اولنی پنځه مونځونه په باقاعدګئ سره د شرطونو اوارکانوسره مقررشو اوپه مزه مزه د دې ټول متعلقات پوره کړې شو.والله اعلم. دې نه پس الله تعالی ﷻ فرمائی چه د الله تعالی منونکو اود نبی د تابعدارانود پاره اجر اوثواب دې چه د همیشه دپاره دې اونه ختمیدونکې دې.لکه چه بل ځای ارشاددې ﴿ مَّاكِثِينَ فِيهِ أَبَدًا ﴾(۷)چه په دې کښې د همیشه همیشه دپاره اوسیدونکی دی. نور فرمائی﴿ عَطَاءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ﴾(۸)هغوی ته چه کوم انعام ورکولې شی هغه نه پریکیدونکې اویوشان دې. سدی رحمه الله فرمائی چه هغه د هغوی حق دې چه دوی ته ورکړې شو اونه د احسان په توګه.خوبعضې آئمه حضراتودې تردید کړې دې ځکه چه په جنتیانوباندې هم دالله ﷻ احسان یقیناً دې.پخپله په قرآن پاك کښې دی ﴿ بَلِ اللَّهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَاكُمْ لِلْإِيمَانِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾(۹)بلکه د الله ﷻ په تاسوباندې احسان دې چه هغه تاسو ته دایمان هدایت کوی.دجنتیانوقول دې﴿ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ ﴾(۱۰)نوالله تعالی په مونږ باندې احسان اوکړو اود اُورد عذاب نه ئې بچ کړو.رسول الله ﷺ فرمائی مګر دا چه الله تعالی ما په خپل رحمت کښې واخلی اوپه خپل فضل اواحسان کښې. (۱۱)

---

۱) الطبری:۲۱/۴۳۰.
۲) ۹۱/الشمس:۹-۱۰.
۳) ۸۷/الاعلی:۱۴-۱۵.
۴) ۷۹/النازعات:۱۸.
۵) الطبری: ۲۱/۴۳۱
۶) ٦/الانعام:۱۴۱.
۷) ۱۸/الکهف:۳.
۸) ۱۱ /هود:۱۵۸.
۹) ٤۹/الحجرات:۱۷.
۱۰) ۵۲/الطور:۲۷.
۱۱) صحیح بخاری کتاب المرضی باب تمنی المریض الموت:۵٦۷۳.

قُلْ أَئِنَّكُمْ

| ورته اووایه | آیا بیشکه تاسو |

| ته تپوس اوکړه چې آیا تاسو خلق |

لَتَكْفُرُونَ بِالَّذِي خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ وَتَجْعَلُونَ

خامخا کفر کوئ | دهغه الله سره | چې هغه پیدا کړه زمکه | په دوو ورځو کښې | او جوړوئ تاسو |

دهغه ذات نه انکار کوئ | چاچې په دوو ورځو کښې زمکه پیدا کړې ده ؟ | اوهغه سره

لَهُ أَندَادًا ۚ ذَٰلِكَ رَبُّ الْعَالَمِينَ ۝ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ

هغه لره | شریکان | هم دغه | رب دمخلوق دي | او هغه ودرول | په هغې کښې | غرونه |

شریکان جوړوئ | هم دا (الله ﷻ) د ټول جهان رب دي | او د دې زمکې دپاسه ئې

مِن فَوْقِهَا وَبَارَكَ فِيهَا وَقَدَّرَ فِيهَا

دپاسه دهغې | او برکتونه ئې کیښودل | په هغې کښې | او په اندازه ئې کړل | په هغې کښې |

درانه غرونه پیدا کړل | او په زمکه کښې ئې برکتونه کیخودو | او قسم قسم غلې ئې

أَقْوَاتَهَا فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ ۖ سَوَاءً لِّلسَّائِلِينَ ۝ ثُمَّ اسْتَوَىٰ

خوراکونه دهغې | په څلورو ورځو کښې | برابر برابر دپاره دغوښتونکو | بیا هغه توجه اوکړه |

په کښې په څلورو ورځو کښې په اندازه کړل | دغه خیزونه دتپوس کونکو دپاره پوره دی | بیا (الله ﷻ)

إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ائْتِيَا

اسمان ته | او هغه لوګي وو | پس وې وئیل | دغه اسمان ته | او زمکې ته | چې راشئ دواړه |

آسمان طرفته متوجه شو | او هغه لوګی‌غوندي وو | نو آسمان او زمکې ته ئې اووئیل

طَوْعًا أَوْ كَرْهًا قَالَتَا أَتَيْنَا طَائِعِينَ ۝ فَقَضَاهُنَّ

پخپله خوښه سره | یا په زور سره | اووئیل دواړو | راغلو مونږه | پخپله خوښه سره | پس جوړ ئې کړل

چې تاسو دواړه په رضا راشئ یا په زور | دواړو اووئیل چې مونږ درته په رضا حاضر یو

سَبْعَ سَمَاوَاتٍ فِي يَوْمَيْنِ وَأَوْحَىٰ فِي كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا ۚ

اوه | اسمانونه | په دوه ورځو کښې | اووې لیږو | په هر اسمان کښې | (کار) قانون دهغې |

نو په دوه ورځو کښې ئې اووۀ آسمانونه پیدا کړل | اوهر آسمان ته ئې دهغه مناسب حکم ورا ولیږلو

وَزَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ وَحِفْظًا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ

اوښائیسته کړو مونږه | اسمان نزدې (ددنیا) | په ډیوو سره | او په ساتنې سره | دا اندازه (منصوبه) ده

او مونږ (دټولو نه نزدې) ددنیا آسمان په ډیوو (یعنی په ستورو) ښائسته کړې دې | او دهغه حفاظت مو کړې دې

الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ۝

دغالب او دپوهه خدائې |

داد زبردست (او) علم والا (پروردګار) انتظام دي

قوله تعالى: ﴿قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ بِالَّذِي خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ﴾
**زمکه اوآسمان په کوم ترتیب سره پیدا کړې شو**:-دهرڅيز خالق د هرڅيز مالك اوپه هرڅيز حاکم په هر څيز قادر صرف هم الله ﷻ دې نوعبادتونه هم د هغه کول پکاردی. هغه د زمکې په شان وسيع مخلوق د خپل قدرت په کمال سره صرف په دوو ورځوکښې پيداکړې ده.تاسو له نه دهغه سره کفرکول پکاردی اونه شرك.ځنګه چه دټولوپيداکونکې هم صرف هغه يودې ټيك دټولوپالونکې هم هغه يودې. دا تفصيل يادساتئ چه نورو آياتونوکښې د زمکې او آسمان پيداکول په شپږو ورځوکښې بيان شوی دی اودلته د هغې د پيداکولو جدا وخت بيانولې شی نومعلومه شوه چه اول زمکه جوړه کړې شوې ده. د عمارت جوړولوقاعده هم دا ده چه اول بنيادونه اولانديني حصه تيارولې شی بياپورتنئ حصه اوچت جوړولې شی. د کلام الله مبارك په يو بل آيت کښې دی الله تعالى هغه ذات دې چاچه ستاسو د پاره په زمکه کښې څه هم دی پيداکولوسره بياد آسمان طرف ته توجه اوفرمائيله اوهغه ئې ټيك اووه آسمانونه جوړکړل. اوپه سورت نازعات کښې﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا﴾(¹)دی اول دآسمان دپيداکولوذکردې بيا فرمائي چه زمکه ئې ددې نه پس خوره کړه.ددې نه مراد د زمکې نه اوبه ګياه راويستل اود غرونو اودرولې دی لکه چه ددې نه پس بيان دې. يعنی اول زمکه پيداکړې شوه بيا آسمان اوبيائي زمکه ټيك ټاك کړه. نو دغه شان په دواړو آياتونوکښې څه فرق نشته. په صحيح بخاری شريف کښې دی يوسړی د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه تپوس اوکړو د قرآن پاك په بعضې آياتونوکښې ماته څه اختلاف شان ښکاری. په يوآيت کښې دی ﴿فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ﴾(²)يعنی د قيامت په ورځ به نه د يوبل نسب وی اونه به د يوبل نه سوال کولې شی. په دويم آيت کښې دی ﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾(³) په خپل مينځ کښې به د يوبل نه تپوس پوښتنه کوی. يوبل آيت کښې دی﴿وَلَا يَكْتُمُونَ اللَّهَ حَدِيثًا﴾(⁴) يعنی د الله ﷻ نه به څه خبره نه پټوی. په دويم آيت کښې دی چه مشرکان به وائی﴿وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾(⁵)په الله ﷻ قسم چه مونږ شرك نه دې کړې.يوآيت کښې دی زمکه ئې دآسمان نه پس خوره کړه. ﴿وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا﴾(⁶)بل آيت کښې ﴿قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ بِالَّذِي خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ وَتَجْعَلُونَ لَهُ أَندَادًا ۚ ذَٰلِكَ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾ (⁷)اول د زمکې پيداکول اوبياد آسمان د پيدائش ذکر دې. يوخود دې آياتونوصحيح مطلب راته اوښايه په کوم سره چه اختلاف ختم شی. بل دا چه کوم فرمائيلې دی ﴿وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ ﴿وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا﴾ ﴿وَكَانَ اللَّهُ سَمِيعًا بَصِيرًا﴾نوڅه مطلب دې چه الله ﷻ داسې وو؟ددې په جواب کښې ابن عباس ﷺ اوفرمائيل په کومودوو آياتونوکښې پخپل مينځ کښې سوال جواب دې اوپه يوکښې ددې انکاردې دا دوه وختونه دی. په شپيلئ کښې به دوه پوکې وهلې شی په يوکښې دخپل مينځ تپوس پوښتنه نه شی کيدې اود يو نه پس به د خپل مينځ تپوس پوښتنه کولې شی. په کومو نوروآياتونوکښې چه په يوکښې د خبرې نه پټولو او په دويم کښې د پټولوذکر دې داهم دوه موقعې دی. کله چه مشرکان اوګوری چه دموحدينو ګناهونه اوبښلې شو نووائی به چه مونږ خومشرکان نه ووخوچه کله ئې په خله باندې مهراولګی اود

---

¹) ۷۹/النازعات: ۳۰.
²) ۲۳/المؤمنون: ۱۰۱.
³) ۵۲/الطور: ۲۵.
⁴) ٤/النساء : ٤۲.
⁵) ٦/الانعام: ۲۳.
⁶) ۷۹/النازعات: ۳۰.
⁷) ٤۱/حم السجدة: ۹.

بدن اندامونه ئې ګواهي ورکول شروع کړي نواوس به هيڅ هم نه پټيږي اوهم پخپله به د خپلو کړو اقراري شي.اوونيلې به شي چه افسوس مونږ دزمکې برابرکړې شوې وې.د آسمان اوزمکې دپيداکولو په ترتيب کښې هم څه اختلاف نشته. اول په دوو ورځوکښې زمکه جوړه کړې شوه بيا په دوو ورځوکښې آسمان جوړکړې شو بيادزمکې څيزونه اوبه ګياه غرونه قوتکانړي شګه کانړي غونډئې وغيره په دوو ورځوکښې پيداکړې. هم دا معنى د لفظ ﴿دحٰها﴾ده.نود زمکې پوره پيداکيدل په څلورو ورځوکښې اوشو او په دوو ورځوکښې آسمان. اوکوم نومونه چه الله ﷻ مقررکړي دى د هغې بيان ئې فرمائيلې دې. هغه به د هميشه هميشه د پاره هم داسې وى.دالله ﷻ هيڅ يوه اراده بغيرد پوره کيدونه نه پاتې کيږي. په قرآن پاك کښې هيڅ کله هم اختلاف نشته.ددې يويولفظ د الله ﷻ د طرف نه دې. (١)

زمکه الله ﷻ په دوو ورځوکښې پيداکړې ده يعنى د اتوار اوپيرپه ورځ. په زمکه کښې هم د زمکې د پاسه غرونه جوړکړې شو اوزمکه هغه د برکت نه ډکه پيداکړه. تاسو په دې کښې تخم کرئى ونې ميوې وغيره د هغې نه پيداکيږي. اود زمکې مخلوق ته چه د کومو څيزونو ضرورت دې هغه هم د دې نه پيداکيږي. دفصلونو اوباغونو ځايونه په دې کښې هم هغه جوړکړې دى.دزمکې دا صحيحوالې د نهې اوچارشنبې په ورځ شوې دې. په څلوروورځوکښې دزمکې پيدائش ختم شوې دې.کوموخلقو چه ددې معلومات حاصلول غوښتل هغوى ته پوره جواب ملاوشو. په هره حصه کښې هغه هغه څيزونه ورکړي دى چه د هغه ځائ د پاره لائق وو مثلاً عصب په يمن کښې، سابورى سابور کښې طيالسه رے کښې.

(٢)هم دا مطلب د آيت د آخرى جملې دې. دا هم ونيلې شوى دى چه د چا کوم ضرورت وو الله تعالى د هغوى د پاره راپيداکړو. هم د دې معنى تائيدد الله تعالى د دې فرمان نه کيږي. ﴿وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ مَا سَاَلْتُمُوْهُ ۭ وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا ۭ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ﴾ (٣)تاسو چه څه اوغوښتل الله ﷻ هغه درکړل. والله اعلم.

**قوله تعالى:: فَقَالَ لَهَا وَلِلْاَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا**

**اسمان او زمکې ته د ارتلو حکم او ددې مطلب::** بيا الله ﷻ د آسمان طرف ته توجه اوفرمائيله هغه د لوګى په شکل کښې وو دزمکې دپيداکولوپه وخت کښې داوبوکوم بخارات اوچت شوى وو.دواړو ته ئې اوفرمائيل چه ياخوزماحکم اومنئى اوچه زه څه وايم هغه شئى په خوشحالئى سره يا په ناخوشحالئى. ابن عباس ﷛ فرمائى مثلاً آسمانونوته اوفرمائيلې شو چه نمر سپوږمئى اوستورى راوخيژونى. زمکې ته ئې اوفرمائيل خپل نهرونه روان کړه خپلې ميوې راوتوکوه وغيره. دواړه دحکم منلود پاره په خوشحالئى سره په رضا تيارشو اوعرض ئې اوکړو چه مونږ سره دهغه ټول مخلوق کوم چه ته راپيدا کول غواړې حکم منونکى يو.اوونيلې شوى دى چه هغوى ئې دقايم مقام کلام کونکو په شان کړل او دا هم ونيلې شوى دى چه د زمکې دې حصې کلام اوکړو کوم ځائ چه کعبه جوړه کړې شوې ده اود آسمان هغه حصې کلام اوکړو چه بالکل د دې د پاسه دې. والله اعلم.

امام حسن بصرى ﷫ فرمائى که چرې آسمان اوزمکې د تابعدارئى اظهارنه کولو نودوى ته به سزا کيدله دکوم چه احساس هم نه کيږي. په دوو ورځوکښې اووه آسمانونه هغه جوړکړل يعنى د زيارت او جمعه په ورځ او په هريوآسمان کښې چه هغه کوم کوم څيزونه اوڅنګه څنګه فرښتې مقررول غوښتل مقررئى کړې اوددنيا آسمان ئې په ستوروښائسته کړو چه دزمکې نه پرقيږي. اودهغه شيطانانو خيال ساتې چه دملاء اعلى خبرې اوريدو دپاره پاس ختل غواړي. دا تدبيراواندازه د هغه الله تعالى ده چه په هر څه باندې غالب دې اود کائنات په يوه يوه حصه کښې د هريوپټ څيز حرکت پيژنى. د ابن جرير ﷫ په روايت کښې دى يهوديانودرسول الله ﷺ نه دزمکې اوآسمان باره کښې سوال اوکړو نوحضور ﷺ

(١) صحيح بخارى کتاب التفسيرسورة حم السجدة قبل حديث:٤٨١٦.
(٢) الطبرى:٤٣٦/٣١.
(٣) ١٤/ابراهيم:٣٤.

اوفرمائيل چه الله تعالى د اتوار اوپير په ورځ زمکه پيداکړه اوغرونه ئې د نهې په ورځ پيداکړل اوچه څومره فائدې په دې کښې دي. دچارشنبې په ورځ اوبه ونې ښارونه آبادئې او شاړې ئې پيداکړې نودا څلور ورځې شوې. ددې بيانولونه پس بيا حضورﷺ د دې آياتونو تلاوت اوفرمائيلو اوونې فرمائيل چه د زيارت په ورځ ئې آسمان پيداکړو اود جمعه په ورځ نمر سپوږمئې ستورې او فرښتې پيداکړې د دريوساعتوباقې کيدو پورې. بيائې په دويم ساعت کښې په هريوڅيز کښې آفت واچولو د کوم نه چه خلق فائدې اوچتوې. اوپه دريم ساعت کښې آدم ؈ پيداکړو هغه ئې په جنت کښې آبادکړو ابليس ته ئې د هغه د سجدې حکم اوکړو اوپه آخرې ساعت کښې ئې د هغه ځائ نه اوويستلو. يهوديانوونيل ښه ده حضورﷺ دې نه پس څه اوشو؟ ونې فرمائيل بيا په عرش باندې مستوى شو. هغوى ونيل چه هرڅه دې تيك اوونيل خوآخرى خبره دې اونه کړه چه بيائې آرام اوکړو. په دې باندې حضورﷺ سخت خفه شو اوبيادا آيت نازل شو ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ۖ وَّمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ ۝ فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوْبِ ۝﴾[1] يعنى مونږ آسمان اوزمکه کښې هرڅه چه ددې په مينځ کښې دى ټول په شپږو ورځوکښې پيداکړل اومونږ ته هيڅ قسم سترې والې اونه شو ته د دوى په خبرو صبرکوه. داحديث غريب دې. بل روايت کښې دى ابوهريره ﷛ فرمائى زما لاس په نيولوسره رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله تعالى خاوره د هفتې په ورځ پيداکړه په دې کښې غرونه د اتوار په ورځ کيخودل ونې ئې د پير په ورځ پيداکړې مکروه څيزونه ئې د نهې په ورځ پيداکړل نور ئې د چارشنبې په ورځ پيداکړو اوځناور ئې په زمکه کښې د زيارت په ورځ خواره کړه اود جمعه په ورځ د مازيګرنه پس د جمعه په آخرى ساعت کښې حضرت آدم ؈ پيداکړو اوپيدائش پوره شو. [2]امام بخارى ﵀ په تاريخ کښې دا معلل خودلې دې او فرمائيلى دى چه دا بعضې راويانو د حضرت ابوهريره ﷛ نه اوحضرت ابوهريره ﷛ د کعب احبار ﵀ نه روايت کړې دې اوهم دا ډير صحيح دى.

| |
|---|
| فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ |
| پس که چرې مخ واړو دوئ انو ورته اووايه \| ازه يروم تاسو \| |
| انوکه اوس هم دوئ (دحق نه) مخ اوګرځوى انوته ورته اووايه |
| صٰعِقَةً مِّثْلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ ۝ اِذْ جَآءَتْهُمُ |
| دسخت عذاب نه \| په مثل \| دسخت عذاب \| دعاديانو \| او ثموديانو \| کله چې راغلل هغوئ ته \| |
| چې زه مو د داسې آفت نه ويروم الکه څنګه چې په عاديانو اوثموديانو راغلې ووا څه وخت چې هغوئ ته |
| الرُّسُلُ مِنْۢ بَيْنِ اَيْدِيْهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا |
| رسولان \| مخکښې دهغوئ نه \| او دروستو د هغوئ نه \| چې تاسو بندګى مه کوئ \| مګر \| |
| د وړاندې روستو نه پيغمبران راغلل\| (او وې ونيل) چې دالله ﷻ نه بغير (دبل چا) عبادت مه کوئ |
| اللّٰهَ ۭ قَالُوْا لَوْشَآءَ رَبُّنَا لَاَنْزَلَ مَلٰٓئِكَةً |
| خاص دالله کوئ \| اوونيل هغوئ \| که غوښتلې \| رب زمونږه \| انو خامخا به ئې راليږلې وې \| فرښتې |
| نو هغوئ اوونيل که چرې زمونږ رب غوښتلې \| نو زمونږ دهدايت دپاره به ئې فرښتې راليږلې وې |

[1] ٥٠/ق: ٣٨-٣٩.

[2] صحيح مسلم كتاب صفات المنافقين باب ابتداء الخلق وخلق آدم ؈: ٢٧٨٩.

فَاِنَّا بِمَآ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ⑭

پس بیشکه مونږه | په هغه څیز | چې رالیږلی شوی یئ تاسو | په هغې سره | انکار کونکی یو |

نو مونږ د هغه پیغام نه انکار کوو د کوم د رسولو دپاره چې تاسو رالیږلي شوي یئ |

فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَقَالُوْا

هر چې عادیان وو | پس تکبر اوکړو هغوئ | په زمکه کښې | په ناحقه سره | اووې وئیل |

نو هر چې عادیان وو | ..........نو هغوئ د زمکې په مخ په ناجائزه تکبر شروع کړو | او دائې اووئیل

مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً ؕ اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ

چې څوک دې زیات سخت | زمونږ نه | په لحاظ دقوت سره | آیا هغوئ اونۀ کتل دې ته | چې بیشکه الله

چې زمونږ نه به زیات څوک طاقتور وي؟ | | ..........هغوئ دې ته اونه کتل | چې کوم الله ﷻ

الَّذِيْ خَلَقَهُمْ هُوَ اَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً ؕ

هغه (الله) دې | چې پیدا ئې کړل دوئ | هغه زیات سخت دې | ددوئ نه | په لحاظ دقوت سره |

دوئ پیدا کړي دي | ..........هغه ددوئ نه زیات طاقتور دې ..........

وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ⑮ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ

اوو هغوئ | په آیتونو زمونږ | چې انکار ئې کولو تر | پس اولیږله مونږه په هغوئ باندې |

او زمونږ د آیتونو نه ئې انکار کولو | نو مونږ پرې په سپیرو ورځو کښې یوه تیزه سیلۍ

رِيْحًا صَرْصَرًا فِيْٓ اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ لِّنُذِيْقَهُمْ

هوا | تیزه | په ورځو سپیرو کښې | دپاره ددې چې وراوڅکوو مونږ هغوئ ته |

راولیږله | ..........چې په دنیا کښې وربانده د رسوا کونکی عذاب خوند اوڅکوو |

عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَخْزٰى

عذاب د شرمندګئ | په ژوند ددنیا کښې | او خامخا عذاب داخرت | زیات د شرمندګئ دې |

..........او د آخرت عذاب به ئې د نور زیات رسوائي سبب شي

وَهُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ ⑯ وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنٰهُمْ

او د هغوئ سره به | هیڅ امداد نۀ کیږي | او هر چې ثمودیان دي | پس نیغه لار مونږ اوښودله هغوئ ته

او د هغوئ مدد به نشي کولې | ..........او ثمودیانو ته مونږ نیغه لار اوخودله

فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ

پس غوره کړل هغوئ | بندول دسترګو | په ځائ دکتلو لارې ته | پس اونیول هغوئ لره | یوې چغې

خو هغوئ د هدایت په مقابله کښې ګمراهي غوره کړه | نو د خپلو عملونو په سبب د یو رسوا کونکی

الْعَذَابِ الْهُوْنِ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ⑰ وَنَجَّيْنَا

دعذاب | سپکونکی | په سبب دهغې عملونو | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | او بچ کړل مونږه

عذاب آفت راګیر کړل | ..........او کومو کسانو چې ایمان راوړې وو

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ۝ وَيَوْمَ

هغه کسان | چې ایمان ئې راوړې وو | او وو هغوئ | چې ځان به ئې ساتلو دبدعملئ نه ||او هغه ورځ

هغوی ته مو نجات ورکړو | اوهغوی زمونږ نه ویریدل | ..................... اوپه کومه ورځ

يُحْشَرُ اَعْدَآءُ اللّٰهِ اِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوْزَعُوْنَ ۝ حَتّٰٓى

چې راجمع کړې کیږی به | دشمنان دالله | ووز ته | پس هغوئ به | حصار ولې کیږی | تر دې پورې

چې دالله ﷻ دښمنان دوزخ ته راجمع کړې شی| نو بیا به په ډلو کښې تقسیم کړې شی | تردې چې

اِذَا مَا جَآءُوْهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ

کله چې | راشی هغوئ دغه دوزخ ته | ګواهی به اوکړی | په هغوئ باندې | غوږونه دهغوئ |

دوزخ ته نزدې ورشی | نو د دوی غوږونه اوسترګې اوڅرمنې به پرې د هغه اعمالو ګواهی

وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ وَقَالُوْا

اوسترګې دهغوئ | او څرمنې دهغوئ | په هغې | چې وو هغوئ | چې کول به ئې | اواوبه وائی هغوئ

ورکوی کوم چې دوی (په دنیا کښې) کول | ..................................او دوئ به خپلو

لِجُلُوْدِهِمْ لِمَ شَهِدْتُّمْ عَلَيْنَا ۭ قَالُوْٓا اَنْطَقَنَا

څرمنو خپلو ته | ولې ګواهی اوکړه تاسو | زمونږ خلاف | اوبه وائی هغوئ | چې ګویا نه کړو مونږه

څرمنو ته وائی | چې تاسو ولې په مونږ باندې ګواهی ورکړه ؟ هغوئ به اووائی چې مونږ هغه

اللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْطَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَّهُوَ خَلَقَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

الله | هغه | چې ګویا نه کړې ئې دې | هر څیز | او خاص هغه | پیدا کړیٔ تاسو | اول ځل |

الله ﷻ ګویا کړی یو| چا چې هر یو څیزته د وئیلو طاقت ورکړې دې| اوهغه تاسو اول ځل پیدا کړی وئ

وَّاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ

هغه ته به|واپس بوتللې کیږئ | اونه وئ تاسو|چې پټیدلی به په وخت دګناه کښې|چې ګنې ګواهی به کوی

اوهغه ته به ټول واپس کولې شئ| اوتاسو (دګناه کولو په وخت د دې خبرې نه، نه پټیدلئ | چې

عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ اَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُوْدُكُمْ وَلٰكِنْ

په تاسو باندې| غوږونه ستاسو |اونه سترګې ستاسو | اونه څرمنې ستاسو الیکن

ستاسو غوږونه ، سترګې اوڅرمنې به ستاسو خلاف ګواهی ورکړی| بلکه تاسو

ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝

ګمان کړې وو تاسو| چې بیشکه الله | نه پوهیږی | په ډیرو کارونو | دهغې نه | چې کوئ ئې تاسو

ګمان کولو | ..............چې الله ﷻ ستاسو په کارونو کښې ډیر کارونه نه پیژنی|

وَذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِيْ ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ

او دغه | گمان ستاسو | هغه گمان دې | چې گمان به کوو تاسو | په رب خپل |

اودا ستاسو گمان وو | کوم چې تاسو په خپل رب باندې کولو | نو هغه گمان تاسو

اَرْدٰىكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ۝ فَاِنْ يَّصْبِرُوْا

(دغه گمان) هلاك کړي تاسو | پس شوئ تاسو | دنقصان موندونکونه | پس که چرې صبر اوکړو دوئ

هلاک کړئي | اوتاسو په تاوانيانو کښې شامل شوئ | ...........نوکه اوس دوئ صبر(هم) کوي

فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ۚ وَاِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ

پس وور | ځائې دې | دپاره ددوئ | او که واپس کيدل غواړي دوئ | پس نه به وی دوئ

خو هم دوزخ ددوئ ټيکانړه ده | اوکه چرې دوئ توبه اوکړي | نو ددوئ توبه به

مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ۝

دواپس کړي شوو نه |

نشي قبلولي |

**قوله تعالىٰ: فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ**

**دحق نه دمخ اړولوانجام:** حکم کولې شي چه خوك ستا تکذيب کوي اوالله تعالى سره کفرکوي ته هغوی ته اوفرمايه چه زما دتعليم نه مخ اړول تاسو څه فائده مندې نتيجې ته نه شي رسولې. ياد ساتئي څنګه چه دانبياء کرامو مخالف امتونه تاسو نه وړاندې تباه بربادکړی دی چرته ستاسود اعمالوبدتاسوهم د هغوی په شان نه کړي.دعاديانواوثموديانواودهغوی په شان د نورو حالات ستاسوپه وړاندې دی هغوی له پړله پسې رسولان راغله په هغه کلی کښې په دې کلی کښې په هغه علاقه کښې او دې علاقه کښې د الله ﷺ پيغمبرانو د الله تعالى آواز کړې ګرځيدلی خودهغوی په سترګو هغه وازګه خوره شوې وه اوپه دماغوکښې ئې هغه ګند ډك شوې وو چه د يوئې هم اونه منل. خپلې مخې ته به ئې د الله تعالى والا بهتري اودرسول د دښمنانو ابتري کتله خوبيا هم د تکذيب نه منع نه شو.دحجت بازئې نه اخوا نه شو ونيل به ئې که الله ﷺ خامخا رسول راليګلو نويوه فرښته به ئې راليګلې وه. ته انسان کيدو سره څنګه رسول جوړشوې؟ مونږ خو به دې باندې هيڅ کله هم يقين اونه کړو.

**قوله تعالى: فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِي الْاَرْضِ**

**دعاديانو سرکشي او غرور:** دې عاديانوپه زمکه کښې فسادخورکړو دهغوی سرکشئي اود هغوی غرور حدته اورسيدو د هغوی بدنئي او بې پرواهئي تردې راورسيدې چه آواز ئې اوکړو چه زمونږ نه زيات زوراور نورخوك نشته. مونږ طاقتور مضبوط اوکلك يو.دالله تعالى عذاب به زمونږ څه اوکړي؟ دومره خواره اوپلن شوچه الله تعالى هم ترې هيرشو. دائې هم خيال اونه کړو چه زمونږ پيداکونکې خو دومره طاقتوردې چه دهغه دطاقت مونږ اندازه هم نه شو کولې.لکه چه ارشاد دې ﴿وَالسَّمَاۤءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْىدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ﴾ [1] مونږ په خپلو لاسونو باندې آسمان پيداکړو اومونږ ډير طاقتور او زوراوريو.نود هغې په دې کبر او دالله ﷺ درسولانو په دروغ ګڼړلو سره اود الله ﷺ نافرمانئي کولوباندې اودرب د آياتونو په انکار باندې

[1] ۵۱/الذريت:۴۷.

په هغوی باندې عذاب راغلو. تنده تیزه یخه ویرونکې او کړنګیدلې سخته سیلئی راغله دې د پاره چه دهغوی دکبرنشه ختمه شي اوهغوی په هواسره تباه کړي(صرصر) وائی هوا د آواز والا. د مشرق طرف ته یونهر دې چه په ډیر زورآواز سره بهیږي. په دې وجه دې ته هم عرب صرصر وائی(نحسات) نه مراد یو بل پسې. یودم یوشان اووه شپې اواته ورځې دغه هواګانې وې. هغه مصیبت کوم چه په هغوی باندې د مصیبت په ورځ راغلو هغه بیا د اتو ورځو پورې نه اخوا شو نو ختم شو. ترکومې چه ئی یویو فنانه کړو اودهغوی تخم ئی اوکنستلو. اودې سره دآخرت د عذابونوهم نورئی جوړشو د کوم نه چه زیات د توهین او ذلت نه بله هیڅ سزا نشته. نه په دنیاکښې څوك د هغوی د امداد د پاره راورسیدل اونه په آخرت کښې د هغوی د امداد د پاره راپاسیدل. بې یارو اومددګار پاتې شو.

**قوله تعالی:: وَأَمَّا ثَمُودُ فَهَدَيْنَاهُمْ**

د ثمودیانو هم مونږ لارخودنه اوکړه هدایت مو ورته اوکړو په هغوی باندې وضاحت اوکړو هغوی ته مو د نیکئی دعوت ورکړو.دالله ﷻ نبی حضرت صالح ﷺ هغوی ته د الله ﷻ حق ښکاره کړو خوهغوی مخالفت اوتکذیب اوکړو اودنبی الله په صداقت باندې کومه اوښه چه الله ﷻ علامت جوړکړې وو د هغې پښئی پرې کړې. بیا په هغوی باندې هم د الله ﷻ عذاب راغلو.یوزبردست ینه شلونکې چغه او زړه ذره کونکې زلزلې په ذلت او خوارئی سره د هغوی د کړو بدله واخسته. په هغوی کښې چه څومره هغه خلق وو چه په الله تعالی باندې یقین وو د انبیاؤکرامو تصدیق ئی کولو په زړونوکښې ئی د الله تعالی ویره وه هغوی مونږ بچ کړل لږ شان هم ورته ضرر اوتکلیف ملاونه شو اود خپل نبی سره ئی د ذلت سپکاوی اوعذاب نه خلاصې بیاموندو.

**قوله تعالی:: وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَاءُ اللَّهِ**

**د قیامت په ورځ د بدن د اندامونو ګواهي:-** یعنی دې مشرکانوته اووایه چه د قیامت په ورځ به د هغوی حشر دوزخ طرف ته وی اود دوزخ داروغه به دا ټول راجمع کوی. لکه چه ارشاد دې ﴿ وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴾[1]یعنی ګناهګاران به د سختې تندې په حالت کښې مونږ ددوزخ طرف ته ورشړو. هغوی به د دوزخ په غاړه اودرولې شی اودهغوی دبدن اندامونه غوږونه سترګې اوڅرمن به د هغوی د اعمالو ګواهی ورکوی. ټول وړاندې روستو عیبونه به راښکاره شی. د بدن هریو اندام به وائی چه په ما باندې ده دا ګناه کړې ده. هغه وخت به دې خپلو اندامونو ته متوجه شی اوهغوی به ملامته کوی چه تاسو زما خلاف ولې ګواهی ورکړه؟ هغوی به دا وائی چه د الله تعالی د حکم پوره کولو لاندې هغه مونږ ته د وینا طاقت راکړو اومونږ رښتیارښتیا اووئیل هم هغه خو ستاسو د شروع نه پیداکونکې دی. هم هغه هریوځیز ته ژبه ورکړې ده. د خالق مخالفت اود هغه دحکم خلاف څوك کولې شی؟ بزارکښې دی حضور ﷺ یوځل مسکې شویائی اوخندل. بیائی اوفرمائیل چه تاسو زماد خندا د وجه تپوس نه کوئی؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم وئیل اوفرمائی څه وجه ده؟ حضور ﷺ اوفرمائیل د قیامت په ورځ به بنده خپل رب سره جګړه کوی چه یاالله ولې ستا وعده نه ده چه ته به ظلم نه کوې؟ الله تعالی به اقرار کوی نوبنده به وائی چه زه خو په خپلو بدعملوباندې د چا ګواهی نه قبلوم. الله تعالی به وائی چه زما اوزماد بزرګو فرښتو ګواهی کافی نه ده؟خوبیابه هم هغه باربار وائی نودحجت د تمامولودپاره به د هغه ژبه بنده کړی اودهغه د بدن اندامونوته به وائی چه هغوی څه څه کړی وو دهغې تاسو ګواهی ورکړئی.کله چه هغوی صفا صفا اورښتونې ګواهی ورکړی نو دې به هغوی ملامته کوی او ورته به وائی چه زه خو هم ستاسو د بچ کولو دپاره جنګیدلم ([2]مسلم نسائی وغیره)ابو موسی اشعری رضي الله عنه فرمائی کافراومنافق به د

---

[1]) ۱۹/مریم:۸۶.

[2]) صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمؤمن وجنة للكافر:۲۹۶۹.(

حساب دپاره راوغوښتلې شي دهغه اعمال به دهغه په وړاندې پيش كولې شي.نوپه قسمونو خوړلو خوړلو سره به انكاركوي اووائى به اې الله ستا فرښتې هغه ليكلي دي كوم چه ما هيڅ كله هم نه دي كړي. اوس به ورله په خله مهر اووهلې شي اود بدن اندامونه به ئې ګواهي وركوي. د ټولو نه اول به د هغه ښي پنډئى خبرې كوي. (ابن ابى حاتم).

ابويعلى كښې دي حضورﷺ فرمائى د قيامت په ورځ به د كافرانوپه وړاندې د هغوى بداعمال راوړلې شي نو هغه به انكاركوى اوجګړه به كوى الله تعالى به وائى چه دادى ستا ګاونډيان كوم چه ګواهان دي دې به ټول دروغژن كړي. فرمائى چه دادى ستا د خاندان والا چه ګواه دى وائي به داهم ټول دروغژن دى الله تعالى به هغوى له قسم وركړي هغوى به قسم اوخورى خودې به هم انكاركوي. الله تعالى به ټول چپ كړي اوپخپله به د هغه اندامونه ژبې شي اوګواهي به وركړي بيا به دې دوزخ ته واستولې شي( )[1]ابن ابى حاتم كښې دى ابن عباس ؓ فرمائى د قيامت په ورځ به يووخت داسې هم وى چه نه به چاته د ويناكولواجازت وى اونه دعذمعذرت. بياچه كله اجازت وركړې شي نو وينا به كوى او جنګ به كوى اوانكاربه كوى اود دروغوقسمونه به خورى. بيابه ګواهان راوړلې شي اوآخريه ژبې بندې كړې شي اوپخپله د بدن اندامونه لاسونه پښې وغيره به ګواهي وركوى. بياچه ژبې كولاو كړې شي نود بدن اندامونه به ملامت كولې شي هغوى به جواب وركوى چه الله تعالى مونږ ته د خبرو طاقت راكړو نومونږ صحيح صحيح اووئيل نود ژبې اقرار به هم اوشي. ابن ابى حاتم كښې درافع ابوالحسن ﷺ نه روايت دې د خپلو كړو په وجه به ژبه دومره پيړه شي چه خبرې به نه شي كولې. بيا به د بدن اندامونه ته حكم اوشي تاسو وائې نوهريوبل خپل خپل عمل ښانئي غوږ سترګه څرمن شرم ګاه لاس پښې وغيره. نورهم د دې قسم آياتونه د سورت يسٓ كښې آيت ﴿اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰۤى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَاۤ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ ( )[2]تفسيركښې تيرشوى دى د كوم چه بيا د دوباره ذكر كولوضرورت نشته.

ابن ابى حاتم كښې دى جابربن عبدالله ؓ فرمائى كله چه مونږ د سمندر د هجرت نه واپس راغلو نود الله ﷺ رسول ﷺ اوفرمائيل تاسوكه دحبشه په زمكه باندې څه حيرانونكې خبره ليدلې وى نويپان كړئى.پدې كښې يوخوان اووئيل چه يوځل مونږ هلته ناست وو دهغوى د علماؤ نه يوه بوډئى ښځې د اوبومنګې په سر كړې راروانه وه.هم په هغوى كښې يوخوان هغې له ديكه وركړه په دې سره هغه راپريوتله اومنګې مات شو. هغه پاسيده اود دغه سړي طرف ته ئې اوكتل اوونى ونيل مكاره تاته به د دې حال هغه وخت معلوم شى كله چه الله تعالى خپله كرسئى اولګوى اوټول وړاندې روستوراجمع كړى اوپښې لاسونه به ګواهي وركړى اويويوعمل به ښكاره شي هغه وخت به ستا اوزما فيصله هم اوشي. دې اوريدو سره حضورﷺ اوفرمائيل هغې رښتياوئيلې هغې رښتياوئيلى. هغه قوم به الله تعالى څنګه پاك كړى په كوم كښې چه زوراور د كمزورى نه بدله وانخستې شي. داحديث په دې سندسره غريب دې. ابن ابى الدنياكښې هم دا روايت په بل سند سره هم روايت دې. كله چه دې خپل اندامونه ملامت كوى نواندامونه به جواب وركولوسره داهم وائى چه ستا عملونه خوڅه پټ نه وو. د الله تعالى په وړاندې ته په كفر اوګناه كښې ډوب اوسيدې اوهيڅ پرواه دې نه كوله خكه چه ستا خيال وو چه زمونږ دير اعمال د هغه نه پټ دى. هم دې خراب خيال ته تباه اوبرباد كړې اوهم په نن ورځ ته غرق شوى. مسلم ترمذى وغيره كښې د حضرت عبدالله ؓ نه روايت دې زه د بيت الله په پرده كښې پټ ووم درې كسان راغلو. غټې خيټې اوكم عقل. يوونيل ولې جي مونږ چه خبرې كووالله تعالى دااورى؟ بل ونيل كه په اوچت آواز سره وينا اوكړو نواورى اوكه په مزه آواز سره خبرې كوو نو نه اورى. دريم ونيل چه څه اورى

[1] ابويعلى.
[2] ۳۶/يسٓ:۶۵.

نو تېولي به اوري. ما حضور ﷺ ته داواقعه بيان كړه په دې باندې دا آيت ﴿وَمَا كُنتُمْ تَسْتَتِرُونَ أَن يَشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَا أَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُودُكُمْ وَلَٰكِن ظَنَنتُمْ أَنَّ اللَّهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيرًا مِّمَّا تَعْمَلُونَ﴾ (¹)نازل شو(²)عبد الرزاق كښې د خلې بنديدونه پس به د تېولونه اول ښپې لاسونه خبرې كوي(³)حضور ﷺ فرمائي دالله رب العزت ارشاد دې چه ماسره زما بنده كوم يوګمان كوي زه هغه سره هم هغه شان معامله كوم اوكله چه هغه ماته آواز كوي زه هغه سره يم. حضرت حسن بصري رحمه الله دومره وينا كولوسره لږ شان تامل اوكړو بيائې اوفرمائيل د چا چه ځنګه ګمان الله تعالى سره وي هم هغه شان دهغه عمل هم وي. مؤمن د الله تعالى سره په نيك ګمان باندې وي نوهغه عمل هم ښه كوي اوكافر اومنافق په الله تعالى باندې بدګمان وي نود هغه هم هغه شان عمل هم وي. بيا هغوى هم دا آيت تلاوت كړو. د مسنداحمد په يومرفوع حديث كښې دي په تاسو كښې دې يوكس نه مرى خو په داسې حالت كښې چه د هغه ګمان د الله تعالى سره ښه وي. كومو خلقو چه الله ﷻ سره خراب خيالات ساتلي الله تعالى هغه نيست اونابود كړل. بيا هغوى هم دا آيت اولوستلو. د دوزخ په اوركښې په صبر سره اوسيدل او بې صبري كول دهغوى د پاره يو شان دي. نه د هغوى عذرمعذرت قبول دې اونه دهغوى ګناه معاف كيږي. كه دوى د دنياطرف ته واپس كيدل غواړي هم نو هغه لارهم بنده ده.لكه چه بل ځائ دى دوزخيان به وائي اې الله ﷻ په مونږ باندې زمونږ بدبختي راخوره شوه يقينًا مونږ بې لارې وو. اې الله اوس خوته د دې ځائ نه خلاصې راكړې. كه بيامونږ داسې اوكړه نومونږ له دخپل ظلم سزا راكړه.دالله ﷻ د طرفنه به جواب راشي چه اوس دامنصوبې بيكاره دي. رټلې شوي هم دلته پراته ئي خبردار كه ماسره مو خبره اوكړه.

وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ فَزَيَّنُوا

او مقرر كړي وو مونږ | هغوى لره | داسې ملګرى | چې ښائيسته به ني ښكاره كولو

| او مونږ دوئ سره (په دنيا كښې) څه (بد) ملګرى مقرر كړي وو

لَهُم مَّا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَحَقَّ

هغوئ ته | هغه | چې مخكښې دهغوئ نه وو | او هغه | چې روستو دهغوئ نه وو | او ثابته شوه

نو هغوئ به ورته خپل وړاندې روستو عملونه ښائسته ښكاره كول | اود دوئ په حق كښې هم

عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم

په هغوئ باندې | خبره دعذاب | په هغه ډلو كښې | چې تيرې شوې وې | مخكښې دهغوئ نه

د پخوانو امتونو پشان دالله ﷻ (دهلاكت) فيصله ثابته شوه |

مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا خَاسِرِينَ ﴿٢٥﴾ وَقَالَ الَّذِينَ

دپيريانونه | او دانسانانونه | بيشكه هغوئ | وو | نقصان موندونكي | او وائي | هغه كسان

كه پيريان وو اوكه انسانان |... بيشكه دوئ تاوانيان دي | .........................او وائي نبي ﷺ

كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا

چې دحق نه ني انكار كړي دي | غوږ مه ږدئ | دې قران ته | او شور جوړوئ |

كافران وائي چې دا قران پاك مه اورئ | او (د دې د تلاوت په دوران كښې) چغې وهئ |

(¹) ٤١/حم السجدة:٢٢،الخ

(²) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة حم السجدة باب قوله تعالى ﴿وماكنتم تستترون ان يشهدعليكم...﴾:

(³) مصنف عبدالرزاق:٢٠١٢٥ وسنده حسن، السنن الكبرى:٦/٤٣٩، حاكم:٢/٤٣٩، احمد:٥/٤ وسنده حسن.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْهِ | لَعَلَّكُمْ | تَغْلِبُوْنَ | فَلَنُذِيْقَنَّ | |
| په وخت دلوستلو دهغې کښې | دپاره ددې چې تاسو | غالب شئ | پس خامخا به مونږ مزه ورڅکوؤ | |
| کيدې شي چې غلبه بيا مومئ | ........................... | نومونږ به په دې کافرانو | | |
| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | عَذَابًا شَدِيْدًا | وَّلَنَجْزِيَنَّهُمْ | |
| هغه کسانوته | چې انکار ئې کړې دې | دعذاب سخت | او خامخا به بدله ورکوؤ مونږ هغوئ ته | |
| باندې د سخت عذاب خوند اوڅکوو | .........:......... او دخپلو بنکاره بدو کارونو | | | |
| اَسْوَاَ | الَّذِيْ | كَانُوْا | يَعْمَلُوْنَ | ذٰلِكَ | جَزَآءُ | اَعْدَآءِ اللّٰهِ |
| دبدترين عمل | هغه | چې وؤ هغوئ | چې کوؤ به ئې | دغه | بدله ده | ددشمنانو دالله |
| سزاګانې به ورته ورکړو | ........................... دالله ﷻ د دښمنانو هم دغه سزا ده | (يعنې) دوزخ | | | | |
| النَّارُ | لَهُمْ | فِيْهَا | دَارُ الْخُلْدِ | جَزَآءً | بِمَا | |
| چې وور دې | دهغوئ دپاره | په هغې کښې | کور هميشه دې | دا سزا (دهغوئ) | په سبب دهغې | |
| همدغه د هغوئ د هميشه اوسيدلو کور دې | دا د ددې (خبرې) سزا ده | | | | | |
| كَانُوْا | بِاٰيٰتِنَا | يَجْحَدُوْنَ | وَقَالَ | الَّذِيْنَ | | |
| چې وؤ هغوئ | دآيتونو زمونږ نه | چې انکار به ئې کولو | اواوبه وائی | هغه کسان | | |
| چې هغوئ به زمونږ دايتونو نه ښکاره انکار کولو | ........................... او کافران | | | | | |
| كَفَرُوْا | رَبَّنَآ | اَرِنَا | الَّذَيْنِ | اَضَلّٰنَا | | |
| چې کفر ئې کړې دې | اے ربه زمونږه | اوښايه مونږ ته | هغه دوه | چې ګمراهه کړې ئې وؤ مونږه | | |
| به وائي | چې ائې زمونږ ربه ! مونږ ته هغوئ دواړه ډلې يعنې پيريان او انسانان | | | | | |
| مِنَ الْجِنِّ | وَالْاِنْسِ | نَجْعَلْهُمَا | تَحْتَ اَقْدَامِنَا | لِيَكُوْنَا | | |
| دپيريانونه | او دانسانانونه | چې کړو مونږه هغوئ دواړه | لاندې دقدمونو زمونږ نه | چې شي دواړه | | |
| چې مونږ ئې ګمراه کړي وو اوښايه | چې ئې د پښو لاندې چيخنړې کړو | د دې دپاره چې دواړه ډلې | | | | |
| مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ | | | | | | |
| دذليلانونه | | | | | | |
| په ذليلو خلقو کښې شامل شي | | | | | | |

**قوله تعالىٰ: وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَآءَ**

**د مشرکانو ملګري:-** الله تعالى بيان فرمائى چه مشرکان هغه ګمراه کړى دى اوداد هغه په رضااوقدرت سره دى. هغه په خپلوټولو کارونوکښې دحکمت خاونددې. هغه څه پيريان اوانسانان هغوى سره داسې کړې وو کومو چه دهغوى بدعملونه هغوى ته په ښه شکل کښې اوخودل چه دتيرشوى وخت په لحاظ او دراتلونکى وخت په لحاظ دهغوى عملونه ښه دى لکه چه بل ايت کښې دى﴿وَمَنْ يَّعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ نُقَيِّضْ

لَهٗ شَيۡطٰنًا فَهُوَ لَهٗ قَرِيۡنٌ۝﴾ (¹) په دوی دعذاب کلمه ربښتيا راغله لکه په هغه خلقوکوم چه ددوی نه وړاندې د دوی په شان وو. په تاوان اونقصان کښې دوی اوهغوی یوشان شو. کافرانو په خپل مينځ کښې مشوره اوکړه او په دې خبره ئې اتفاق اوکړو چه هغوی به کلام الله نه منی اونه به د دې په احکامو باندې راتګ کوی بلکه يوبل ته ئې ونيلي دی چه کله قرآن پاك لوستلې شی نوشورزوګ کوئی اودا مه اوړئی لاسونه پړقونی شپيلی وهئی او آوازونه اوباسئی.نوقريشو به هم دا کول عيبونه به ئې لټول اوانکاربه ئې کولودښمنی به ئې کوله اودا به ئې دخپلې غلبه ذريعه ګڼړله. هم دغه حال دهريوجاهل کافردې چه په ده دقرآن پاك اوريدل ښه نه لګی. ددې دپاره الله تعالی مؤمنانوته ددې په خلاف حکم ورکړې دې ﴿وَاِذَا قُرِئَ الۡقُرۡاٰنُ فَاسۡتَمِعُوۡا لَهٗ وَاَنۡصِتُوۡا لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ۝﴾ (²) کله چه قرآن پاك لوستلې شی نوتاسو چپ اوسئی او دا اوړئی دې دپاره چه په تاسو باندې رحم اوکړې شی.

**قوله تعالی:: وَقَالَ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَا تَسۡمَعُوۡا لِهٰذَا الۡقُرۡاٰنِ**

**قرآن پاک په خاموشئ سره اوريدل پکاردی** ::دې کافرانوله دهمکی ورکولې شی چه د قرآن کريم سره د مخالفت کولو په وجه به دوی ته سخته سزا ورکولې شی اود هغوی دبدوعملونو خوندبه هغوی ته ضرور ورڅکلې شی. دالله تعالی د دې دښمنانو بدله د دوزخ أوردې. په کوم کښې چه د هغوی د پاره د هميشه والئ کوردې. دا دهغې بدله ده چه دوی د الله تعالی د آياتونوانکارکولو. د دې نه پس والا آيت مطلب د علی ﷺ نه روايت دې دپيرې نه مراد ابليس اود انس نه مراد د آدم ﷺ هغه خوئ دې کوم چه خپل رور وژلې وو(³) بل روايت کښې دی چه ابليس خو هريومشرك ته آواز کوی اود آدم ﷺ دا خوئ په دهرې کبيره ګناه کونکی ته آواز کوی. نوابليس د شرك طرف ته اود ټولوګناهونو طرف ته د خلقو دعوت کونکې دې اود اول رسول آدم ﷺ دا خوئ چه د خپل رور قاتل دې (⁴) په حديث کښې دی چه په مخ د زمکې کوم يو ناحقه قتل کيږی د هغې ګناه د حضرت آدم ﷺ هغه رومبی خوئ ته هم کيږی (⁵) ځکه چه دبې خايه قتل کولوشروع هم ده کړې وه.نوکافران به دقيامت په ورځ پيريان او انسانان کومو چه دوی ګمراه کړې وو هغوی به په لاندې درجه کښې رسول غواړی دې دپاره چه په هغوی باندې سخت عذاب وی اوچه هغوی درك اسفل ته لاړشی او د هغوی نه ډيره سزا اوخوری. په سورت اعراف کښې دا هم بيان تيرشوې دې چه دا منونکی چه د چابه ئې منل د هغوی د پاره به د قيامت په ورځ د ډبل عذاب درخواست وی په کوم چه به ونيلې شی چه هريو په ډبل عذاب کښې دې خوتاسو بې شعوره ئې. هريوته دهغه داعمالوسزاورکړې کيدې شی. لکه چه بل آيت کښې دی ﴿وَصَدُّوۡا عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ زِدۡنٰهُمۡ عَذَابًا فَوۡقَ الۡعَذَابِ بِمَا كَانُوۡا يُفۡسِدُوۡنَ۝﴾ (⁶) يعنی کوموخلقو چه کفر کړې اود الله تعالی د لارې نه منع شوی دی هغوی به مونږ د هغوی د فساد په وجه د عذاب دپاسه عذاب کوو.

| ثُمَّ اسۡتَقَامُوۡا | رَبُّنَا اللّٰهُ | قَالُوۡا | اِنَّ الَّذِيۡنَ |
|---|---|---|---|
| بيا مضبوط پاتې شو په هغې | رب زمونږه الله دې | چې وئې ونيل | بيشکه هغه کسان |
| بيشکه کومو خلقو چې اقرار اوکړواچې زمونږ رب الله دې بيا په دې قائم پاتې | | | |

¹) ٤٣/الزخرف:٣٦.
²) ١٧/الاعراف:٢٠٤.
³) الطبری:٢١/٤٦٢.
⁴) الطبری:٢١/٤٦٢.
⁵) صحيح بخاری کتاب احاديث الانبياء باب خلق آدم وذريته:٣٣٣٥، صحيح مسلم:١٦٧٧.
⁶) ١٦/النحل:٨٨.

| |
|---|
| تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا |
| نازليږي \| په هغوئ باندي \| فرښتي \| (او ورته وائي) چي مهٔ يريږئ \| او غم مهٔ کوئ \| |
| شو انو په هغوئ به (درحمت) فرښتي نازليږي \| (او وائي به) چي تاسو مه ويريږئ \| اومه غمژن کيږئ \| |
| وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ۝ نَحْنُ اَوْلِيٰٓؤُكُمْ |
| اوخوشحاله شئ \| په هغه جنت سره \| چي ستاسو سره به ني وعدي کيدلي \| مونږه \| دوستان يو ستاسو |
| او دجنت زيري واورئ \| دکوم چي تاسو سره وعده کولي شوه \| ..............مونږ ددنيا |
| فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَشْتَهِيْٓ |
| په ژوند ددنيا کښي \| او په آخرت کښي \| او دي ستاسو دپاره \| په هغي کښي \| هغه چي غواړي ني |
| په ژوند کښي هم ستاسو ملګري وو \| او په آخرت کښي هم \| او څه چي مو زړه غواړي هغه به درته |
| اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيْهَا مَا تَدَّعُوْنَ ۝ نُزُلًا |
| نفسونه ستاسو \| او دي ستاسو دپاره \| په هغي کښي \| هغه چي آرزوني کوئ تاسو \| دا ميلمستيا ده |
| په جنت کښي موجود وي \| اوتاسو دپاره به هغه هرڅه موجود وي \| چي تاسو ئي غواړئ |
| مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ ۝ |
| دطرفه دبښونکی \| مهربانه الله نه \| |
| دادبخښونکی مهربان الله د طرفنه ميلمستيا ده\| |

**قوله تعالى:: ثُمَّ اسْتَقَامُوْا**

**د استقامت معنى اومفهوم:**-کوموخلقوچه دالله ﷻ درب کيدويعني د هغه دتوحيداقراراوکړو بيا په هغي باندي کلك ولاړوو يعني دالله تعالى دحکم لاندي ني خپل ژوندتيرکړو.حضورﷺد دي آيت تلاوت کولو سره اوفرمائيل ډيرو خلقو د الله تعالى درب کيدو اقرارکړي بيائي کفر اوکړو.کوم چه ترمرګه پوري دا واني هم هغه دي څوك چه په دي باندي استقامت اوکړي[1](نسائي وغيره)دابوبکرصديق ﷺ په وړاندي به کله ددي آيت تلاوت کيدلونوهغوى به فرمائيل چه د دي نه مراد دکلمي لوستلو سره بياکله هم د شرك نه کونکي دي.يوروايت کښي دي چه خليفة المسلمين د خلقو نه د دي آيت د تفسير تپوس اوکړو نوهغوى ونيل داستقامت نه مراد ګناه نه کول دي. دابن عباس ﷺ نه تپوس اوکړي شوچه په قرآن پاك کښي دحکم او جزا په لحاظ سره د ټولونه آسان آيت کوم يو دي؟ هغوى د دي آيت تلاوت اوکړوچه د الله ﷻ په توحيد باندي ټول عمر قايم پاتي کيدل.فاروق أعظم ﷺ په منبرباندي ددي آيت تلاوت کولو سره اوفرمائيل والله دا هغه خلق دي چه د الله تعالى په اطاعت باندي کلك ولاړ دی اود لومبړي په تګ باندي نه څي چه کله اخواکله ديخوا.ابن عباس ﷺ فرمائي دالله ﷻ دفرائضواداکول کوی. قتاده رحمه الله به دادعالوستله ﴿اللهم انت ربنا فارزقنا الاستقامة﴾ اې الله تعالى ته زمونږه رب ئي مونږ له استقامت اوپوخوالي رانصيب کړه.د استقامت نه مراد د دين عمل اوخلوص دي. حضرت ابوالعاليه رحمه الله فرمائي چه يوسړي د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه ماته د اسلام يوداسي کار اوښايه چه بياد بل چا نه د تپوس ضرورت پاتي نه شي. حضورﷺ اوفرمائيل په ژبه باندي اقرار اوکړه چه ما په الله تعالى باندي ايمان راوړي بيا

---

[1]) ترمذی کتاب تفسیرالقرآن باب ومن سورة حم السجدة: ۳۲۵۰ مسندابی یعلی:۳۴۹۵.

په دې کلک شه. هغه بیاپوس اوکړو چه ښه ده داخو عمل شو نو بچ کیږم به د څه نه؟ نو حضورﷺ د ژبې طرف ته اشاره اوفرمائیله. (١)

**قوله تعالی:: أَلَّا تَخَافُوا وَلَا تَحْزَنُوا**

**د مرګ په وخت کښې فرښتې مؤمن ته دَ جنت زیرې اوروی:-** هغوی له د هغوی د مرګ په وخت کښې فرښتې راځی اوهغوی ته زیری اوروی چه ته اوس د آخرت د منزل طرف ته روان ئې بې ویرې اوسیږه په تاباندې هلته هیڅ غم نشته ته چه خپل شاته کومه دنیاپریږدې په هغې باندې هم هیڅ غم اوخفګان مه کوه.ستادبال بچ ستا دمال ومتاع دین اودیانت حفاظت زمونږپه ذمه دې. مونږ ستا خلیفه ګان یو. مونږ تاته زیرې اوروو چه ته جنتی ئې تاته رښتونې اوصحیح وعده درکړې شوې وه هغه به پوره کیږی. نو هغوی د خپل مرګ په وخت کښې خوشحالیږی چه د ټولو بدو نه بچ شو اوټولې ښیګړې ورته حاصلې شوې.حدیث کښې دی رسول الله ﷺ فرمائی د مؤمن روح ته فرښتې وائی اې پاکه روحه چه په پاك بدن کښې وې راځه د الله تعالی دښښې انعام اونعمت طرف ته راروان شه هغه الله تعالی له چه په تاباندې ناراض نه دې(٢)دا هم روایت دې چه کله مسلمان د خپل قبرنه اوچت شی هم هغه وخت به فرښتې هغه له راځی اوهغه ته به زیری اوروی. حضرت ثابت ﷺ چه به کله د دې سورت په لوستلو سره دې آیت ته راورسیدونواودریدوبه او فرمائیل ئې مونږ ته دا خبرملاوشوې دې چه کله مؤمن بنده دقبر نه اوچتیږی نوهغه دوه فرښتې کومې چه به دنیاکښې ده سره وې هغه له به راشی اوورته به وائی ویریږه مه خفه کیږه مه ته جنتی ئې خوشحاله شه تاسره چه د الله تعالی کومې وعدې وې هغه به پوره کیږی. غرض ویره به په امن سره بدله شی سترګې به ئې یخې شی اوزړه به ئې مطمئن شی د قیامت ټوله ویره ترهه اودهشت به ترې لرې شی.دنیك عمل بدله به په خپلو سترګو سره اووینی اوخوشحاله به شی.لنډه دا چه د مرګ په وخت کښې د قبرنه د راپاسیدو په وخت د رحمت ملائکې به هغه سره وی اوهروخت به ورته زیری اوروی. هغوی ته به فرښتې داهم وائی چه په ژوند کښې مونږ ستادوستان اولیان وو تاته به مو د نیکئی لارخودله دخیرطرف ته به مو بوتلې ستا حفاظت به مو کولو هم دغه شان به مونږ په آخرت کښې هم تاسره یو.ستا ویره ترهه به لرې کوو.په قبرکښې حشر کښې دقیامت په میدان کښې په پل صراط باندې غرض په هریوځائ کښې به مونږ ستا ملګری اودوستان یو.دنعمتونود جنتونود رسولوپورې به مونږ تانه نه جداکیږو. هلته چه ته څه غواړې تاته به ملاویږی کومه آرزو چه دې وی پوره کیږی به. دا میلمستیا داورکړه دا انعام اوضیافت د هغه الله ﷻ د طرف نه دې چه ښښونکې او مهربانی کونکې دې د هغه لطف اورحم د هغه ښښنه اوکرم ډیر وسیع دې.

**قوله تعالی:: وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِي أَنفُسُكُمْ**

**دَ جنت بازار اودَ الله تعالی دیدار:**سعیدبن مسیب اوابوهریرهؓملاقات اوشونوابوهریره ؓ اوفرمائیل الله تعالی دې مونږ دواړه د جنت په بازارکښې یوځائ کړی په دې باندې حضرت سعیدؒ اوفرمائیل چه په جنت کښې به هم بازاروی؟ وئی فرمائیل ماته رسول اللهﷺ خبر راکړې دې چه کله جنتیان جنت ته خی اود خپلو خپلو مرتبوبرابر درجې ته رسی نود دنیاد اندازې برابر د جمعه په ورځ یوځائ کښې د راجمع کیدواجازت به ملاویږی. کله چه ټول راجمع شی نوالله تعالی به په هغوی باندې تجلی اوفرمائی د هغه عرش به ښکاره شی هغوی ټول به د جنت په باغیچه کښې د نور لوء لوء یاقوتو زبرجدو اوسرو سپینوزرو په منبرونوباندې کینی. بعضې نورچه کوم په نیکوکښې د کمې درجې وی خود جنتی کیدو په اعتبارسره هیڅ څوك به د بل نه کمترنه وی هغوی به د مشکو او کافورو په غونډو باندې وی خو په

---

(١) احمد:۴۱۳/۳ وسنده صحیح، دارمی:۲۹۶/۲، ابن حبان:۵۶۹۸.

(٢) احمد:۲۸۷/۴وهو حدیث حسن.

خپل ځاې باندې به دومره خوشحاله وي چه د کرسنی والا به د خپل ځان نه په مجلس کښې غوره نه ګڼړي.ابوهريره ﷛ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه آيا مونږ به خپل رب وينو؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه اووينئی به.د نيمې ورځ نمر او د څوارلسمې سپوږمئی چه څنګه صفا وينئی دغه شان به خپل الله تعالی هم وينئی. په دې مجلس کښې به يو يو الله تعالی سره خبرې کوی. تردې پورې چه فرمائی به يادی فلانکې ورځ باندې تا فلانکې خلاف کارکړې ووهغه به وائی چه ولې نه زماربه تاخو زانه هغه خطا معاف کړې وه بيا د هغې څنګه ذکر دې؟ وائی به ټيک ده هم د دغه مغفرت په وجه خو ته دې درجې ته رارسيدلې ئی. دوی به په دې حالت کښې وی چه يوه اُوريځ به دوی راپټ کړی اود هغې نه به داسې خوشبوئی راووريږی چه هيڅ کله به هم چا بوئی کړې نه وی. بيا به رب العالمين اوفرمائی پاسئی اوما چه کوم انعام اواکرام تاسوله تيارکړې دې هغه واخلئی.بيا به دوی يوبازار ته اورسی کوم چه به د هرطرف نه فرښتو راګيرکړې وی هلته به داسې څيزونه وينی چه نه به ئی کتلې وی نه به ئی اوريدلې وی اونه به ئی چرته په خيال کښې تيرشوی وی. کوم سړې چه کوم څيز غواړی اخلی به ئی. هلته به اخستل اوخرڅول نه وی بلکه انعام به وی. هلته به ټول جنتيان يوبل سره ملاقات کوی؟ د يوې کمې درجې جنتی به د اوچتې درجې جنتی سره ملاقات کوی نود هغه لباس وغيره ته چه اوګوری نو په زړه کښې به خيال کوی اوهم هلته به خپل بدن ته په کتوکښې خيال کوی د ده نه د هغه کپړې ډير ښې دی ځکه چه هلته به چاته هيڅ غم اوخفګان نه وی. بيا به مونږ ټول واپس خپلو خپلو منزلوته لاړ شو.هلته به زمونږ بيبيانې مونږ ته پخيرراغلې وائی اووائی به چه د کوم وخت نه تاسو د دې ځاې نه تلې وئی نوهغه وخت خو دا تازه والې اودا نورانيت نه وو خوولې دې وخت کښې خو ښائست خوبی خوشبوئی نوره هم ډيره زياته شوې ده. دوی به جواب ورکوی چه اوټيك ده مونږ نن د الله تعالی په مجلس کښې وو اويقينا مونږ ډير اوچت اوزيات شو. (١) (ترمذی)

**څوک چې دالله تعالی ملاقات غواړی نو الله دهغه ملاقات غواړي**:: مسند احمد کښې دی حضور ﷺ فرمائی څوک چه د الله تعالی ملاقات خوښوی الله تعالی به هم هغه سره ملاويدل غواړی او څوک چه د الله تعالی ملاقات خراب ګڼړی الله تعالی هم د هغه ملاقات نه خوښوی.صحابه کرام ﷢ اووئيل يارسول الله ﷺ مونږ خود مرګ نه کرکه کووحضور ﷺ اوفرمائيل دې نه مراد د مرګ نه کرکه نه ده بلکه د مؤمن د زنکدن په وخت کښې د الله تعالی د طرف نه هغه له زيرې راځی دکوم په اوريدو چه هغه له د الله ﷻ د ملاقات نه زيات خوښ بل څيز نه وی نوالله تعالی هم د هغه ملاقات خوښوی. اود فاجر اوکافر د زنکدن په وخت کښې کله چه هغه ته د دې بدنې خبرورکولې شی کومه چه هغه ته اوس رسيدونکې ده نوهغه د الله تعالی د ملاقات نه کرکه کوی نوالله تعالی هم د هغه ملاقات مکروه ګڼړی. (٢) دا حديث بالکل صحيح دې اود دې ډير اسناد دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَنْ | اَحْسَنُ | قَوْلًا | مِّمَّنْ |
| او څوک دی | ډير ښائيسته | په لحاظ دخبری سره | دهغه چانه |
| | | اودهغې بنده نه ښه خبره د چا کيدې شی | چې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دَعَآ | اِلَى اللّٰهِ | وَعَمِلَ صَالِحًا | وَّقَالَ | اِنَّنِيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۳۳﴾ |
| چې رابلې خلق | الله ته | او عمل کوی نيک | اوونې ونيل | چې بيشکه زۀ دمسلمانانو نه يم |
| دالله ﷻ طرفته بلنه کوی | او نيک عمل کوی | او دا وائی چې زه له تابعدارو څنې يم | | |

(١) ترمذی کتاب صفة الجنة باب ماجاء في سوق الجنة: ٢٥٤٩ ابن ماجه: ٤٣٣٦، السنة: ٧٨٥.
(٢) احمد: ١٠٧/٣ وسنده ضعيف ولکنه صحيح بالشواهد صحيح مسلم: ٢٦٨٣، احمد: ٩٥/٤.

وَلَا تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ؕ ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ

اونهٔ يو شان کيږي | نيکي اونهٔ بدئ | دفع کړه (بدي) | په هغه نيکئ سره |

او نيکي اوبدي هيڅ کله برابريدي نشيٴ| ..............ته په ښه (خوږه) طريقه (دښمن) د ځان نه

أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ

چې هغه ډيره ښائيسته وي | پس بيا به وي | هغه سړې چې په منځ ستا | او په منځ دهغه کښې

لرې کړه | نوستا اود چا ترمينځه چې دشمني وي

عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ ۝ وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الَّذِينَ

دشمني وي |داسې لکه چې هغه |دوست دې | مهربانه |اونهٔ نصيب کيږي داصفت |مګر هغه کسانو ته

هغه به داسې (نرم) شي لکه مهربان دوست| اودا نصيحت دهغه چا نصيب کيږي چې

صَبَرُوا ۚ وَمَا يُلَقَّاهَا إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ۝ وَإِمَّا

چې صبر اوکړو هغوئ | اونهٔ ورکړې کيږي دا مقام | مګر خاوند دحصې لوئې ته | او که چرې

صبر کولې شي | اودا سبق هغه څوک اخستې شي چې د لوئې نصيب خاوندوو| اوکه چرې

يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ ؕ إِنَّهُ

اورسيږ ى تاته | دطرفه دشيطان نه | څه وسوسه | نو پناه اوغواړه په الله پورې | بيشکه هغه

ستاپه زړه کښې د شيطان د طرفه څه وسوسه پيدا شي | نو د الله ﷻ نه پناه غواړه | بيشکه هغه

هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ۝

خاص هغه اوريدونکې دې | او ډير پوهه دې

هرڅه اورى | په هر څه پوهه دې |

**قوله تعالى:: وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَا إِلَى اللَّهِ**

**دتولونه ښه دعوت د چا دې ؟:**-فرمائي چه څوك د الله ﷻ بنديګان د اللهﷻ طرف ته رابلى او پخپله هم نيکى کوى اسلام قبول کړى د هغه نه به ډيره ښه خبره د بل چا وى؟ دا دى چاچه خپل ځان ته پخپله نفع اورسوله اود اللهﷻمخلوق ته ئى هم نفع اورسوله.دادهغوى نه نه دى چه صرف دخُلې دخبرو پړانګان دي. نورو ته وائي خوپخپله نه کوى. دوى خو پخپله هم کوى اونوروته هم وائى. دا آيت عام دې. رسول الله ﷺ د ټولونه زيات په دې باندې پوره دې. بعضو وئيلى دى چه د دې مصداق اذان کونکى دى کوم چه نيکان هم دى.

**د مؤذن د فضيلت احاديث::** په صحيح مسلم کښې دى د قيامت په ورځ به مؤذن خلق د ټولونه د اوږدو غړانګو والا وى(١)سنن کښې دى امام ضامن دې اومؤذن امانت دار.الله تعالى دې امامانوته نيغه لار اوښائى اومؤذنان دې اوبښى(٢)ابن ابى حاتم کښې دى چه سعدبن ابى وقاص ﷺ فرمائى د آذان کونکو

---

(١) صحيح مسلم كتاب الصلاة باب فضل الاذان وهرب الشيطان عند سماعه: ٣٨٧، ابن ماجه: ٧٢٥، احمد:٤/٩٥.

(٢) ابوداؤد كتاب الصلاة باب مايجب على المؤذن من تعاهدالوقت: ٥١٧وهوحسن، ترمذى: ٢٠٧، مسند الطيالسى:٢٤٠٤، احمد:٢/٤١٩، ابن حبان: ١٦٧٢، مصنف عبدالرزاق: ١٨٣٩، صحيح ابن ماجه١٥٣١.

حصه د قیامت په ورځ د الله ﷻ په نیز په شان د جهاد کونکي د حصې ده داذان اواقامت په مینځ کښې دا هغه حالت دې لکه څوك چه په جهاد کښې د الله تعالی په لارکښې په خپلو وینوکښې لړپرکیږي. ابن مسعود﷛ فرمائي که چرې زه مؤذن ووم نوبیابه ماته د حج عمرې اوجهاد دومره پرواه نه وه دحضرت عمر ﷛ نه نقل دی که چرې زه مؤذن ووم نوزما ارمان به پوره شوې وو اوما به د شپې د نفلي مونځونو او د ورځې د نفلي روژو دومره زیات کوشش نه کولو.ما اوریدلی دی چه د اللهﷻ رسول ﷺ درې خل د مؤذنانو باره کښې دبښنې دعاکړې ده. په دې باندې ماواوئیل چه حضورﷺ تاسو مونږ په دعاکښې یادنه کړو سره ددې چه مونږ په اذان کولو باندې توري نیسو.حضورﷺ اوفرمائیل چه اوخواې عمر﷛ داسې زمانه هم راتلونکې ده چه مؤذنی به دغریبانانو مسکینانوپورې پاتې شي.واورهعمره﷛ د کومو خلقوغوښه اوپوستکې چه په دوزخ باندې حرام دې په هغوی کښې اذان کونکی هم دی. حضرت عائشه ﵂ فرمائي چه په دې آیت کښې هم دمؤذن تعریف دې. دهغه حی علی الصلوٰة ونیل د الله تعالی طرف ته رابلل دی. ابن عمر ﷛ اوعکرمه ﷫ فرمائي داآیت د مؤذنانوباره کښې نازل شوې دې. اوداچه کوم نې اوفرمائیل هغوی نیك عمل کوی د دې نه مراد د اذان اوتکبیر په مینځ کښې دوه رکعته مونځ کوی.لکه څنګه چه دحضورﷺ ارشاد دې د دوو اذانونوپه مینځ کښې مونځ دې د دوو اذانونو په مینځ کښې مونځ دې چه څوك غواړي([1])په یوحدیث کښې دی چه د اذان اواقامت په مینځ کښې دعاکول نه ردکیږي([2])صحیح خبره دا ده چه آیت د خپل عموم په لحاظ سره د مؤذن اوغیرمؤذن هرسړی ته شامل دې څوك چه د الله تعالی طرف ته دعوت ورکړي. دا یادساتئې چه د دې آیت د نازلیدو په وخت د سرنه اذان شروع شوې هم نه وو. څکه چه دا آیت په مکه کښې نازل شوې دې اواذان مدینې ته د رسیدونه پس مقررشوې دې. کله چه عبدالله بن زید بن عبدربه ﷛ په خپل خوب کښې اذان ورکول اوکتل او واوریدلواوحضور ﷺ ته ئې د دې ذکر اوکړو نو حضورﷺ اوفرمائیل بلال ﷛ ته ئې اوښایه د هغه آواز اوچت دې([3])نوصحیح خبره دا ده چه دا آیت عام دې په دې کښې اذان کونکی هم شامل دی.

حضرت حسن بصری ﷫ د دې آیت په اوریدوسره فرمائیل هم دغه خلق دی د الله تعالی دوستان، هم دغه دی د الله تعالی ولیان هم دا د الله تعالی د ټولونه زیات خوښ دی اودغه د ټولونه زیات الله تعالی ته ګران دی چه هغوی دالله ﷻ خبرې اومنلې اوپخپلومنلوکښې نیکئې اوکړې اودخپل خان د مسلمان کیدو اعلان ئې اوکړو هم دغه د الله تعالی خلیفه ګان دی. ښیګړه اوبدی نیکی اوبدی برابر برابر نه شی کیدې بلکه په دې کښې ډیر فرق دې. څوك چه تاسره بدی کوی ته هغه سره نیکی کوه اود هغه بدی دغه شان لرې کړه. دحضرت عمر﷛ فرمان دې ستاباره کښې چه کوم سړې د الله تعالی نافرمانی اوکړې نو ته دهغه باره کښې دالله ﷻ فرمانبرداری اوکړه د دې نه زیات هیڅ خیز نشته. الله ﷻ فرمائي چه داسې کولوسره ستاد خان دښمن هم ستا دوست جوړیږي. په دې وصیت به د هغه نه عمل کیږي چه صبرکونکې وي په نفس باندې اختیارلری اووی هم نصیب والا چه د دین اودنیا بهتری د هغه په تقدیر کښې وی.ابن عباس﷛ فرمائي چه ایماندارو ته دالله ﷻ حکم دې چه هغوی دې دغصې په وخت کښې صبرکوی اود بل په جهالت باندې دې د خپل برداشت ثبوت پیش کوی اود نورو بدئی دې معاف کوی. داسې خلق دشیطانی چالونونه په حفاظت کښې وی اودهغوی دښمنان هم بیادهغوی دوستان جوړیږي.

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التهجد باب الصلاة قبل المغرب: ۱۱۸۳، صحیح مسلم:۸۳۸، ابوداؤد: ۱۲۸۳، ترمذی:۱۸۵، ابن ماجة: ۱۱۶۲، ابن حبان:۱۵۸۹ ،احمد:۸٦/٤.

[2]) ابوداؤد کتاب الصلاة باب فی الدعاء بین الاذان والاقامة: ۵۲۱وهوصحیح، ترمذی:۲۱۲، عمل الیوم واللیلة للنسائی:٦۸، مصنف عبدالرزاق:۱۹۰۹، ابن ابی شیبه ۲۲۵/۱۰، احمد: ۱۱۹/۳.

[3]) ابوداؤد: ٤۹۹وسنده حسن.

دا خوشوه د انسانی شرنه د بچ کیدو طریقه اوس د شیطانی شر نه د بچ کیدو طریقه ښائی چه د الله تعالی طرف ته تیتیږه اوهم هغه ده ته دا طاقت ورکړې دې چه هغه په زړونوکښې وسوسې پیداکړې اوهم د هغه په اختیارکښې دی چه د هغه د شر نه نی مجفوظ اوساتي. نبی کریم ﷺ به په خپل مانځه کښې فرمائیل ﴿اعوذبالله السميع العليم من الشيطن الرجيم من همزه ونفخه ونفثه﴾[1] اول مونږ بیان کړې دې چه د دې مقام په شان مقام صرف په سورت اعراف کښې دې چرته چه ارشاد دې ﴿خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ۝﴾[2] اود سورت مؤمنون آیت ﴿اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ السَّيِّئَةَ نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَصِفُوْنَ۝﴾[3] کښې حکم شوې دې چه دمعاف کولوعادت خان کښې واچونی اودالله تعالی په پناه کښې راځنې دبدو بدله په نیکوسره ورکوئې. وغیره.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمِنْ اٰيٰتِهِ | الَّيْلُ | وَالنَّهَارُ | | | |
| او دنښو دهغه نه دی | دا شپه | او ورځ | | | |
| او ددهٔ (دقدرت) په نښو کښې شپه ، ورځ | | | | | |
| وَالشَّمْسُ | وَالْقَمَرُ | لَا تَسْجُدُوْا | لِلشَّمْسِ | وَلَا لِلْقَمَرِ | وَاسْجُدُوْا |
| او نمر | او سپوږمئ | سجده مهٔ کوئ تاسو | نمر ته | او نهٔ سپوږمئ ته | او سجده کوئ |
| نمر ، او سپوږمئ دی | نو تاسو مه نمر ته سجدې کوئ | او مه سپوږمئ ته | اوصرف | | |
| لِلّٰهِ الَّذِيْ | خَلَقَهُنَّ | اِنْ كُنْتُمْ | اِيَّاهُ | تَعْبُدُوْنَ۝ | |
| هغه الله ته | چې پیدا کړې نې دی دا | که یئ تاسو | خاص هغه لره | چې عبادت کوئ | |
| الله ﷻ ته سجدې کوئ | اچاچې دا ټول څیزونه پیدا کړې دی | که تاسو صرف د الله ﷻ عبادت کول غواړئ | | | |
| فَاِنِ اسْتَكْبَرُوْا | فَالَّذِيْنَ | عِنْدَ رَبِّكَ | يُسَبِّحُوْنَ لَهٗ | | |
| پس که چرې لوئې اوکړه دوئ | نو هغه څوك (فرښتې) | چې په نز درب ستا دی | تسبیح وائی هغه لره | | |
| نو که دوئ تکبر اوکړو | نو کومې (فرښتې) چې ستا درب سره دی | هغه شپه ورځ | | | |
| بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ | وَهُمْ لَا يَسْـَٔمُوْنَ۝ | وَمِنْ اٰيٰتِهٖ | اَنَّكَ | | |
| په شپه او ورځ کښې | او هغوئ نهٔ ستړې کیږی | او دنښو دهغه نه داده | چې بیشکه تهٔ | | |
| دده تسبیح وائی | او هیچرې نه ستړې کیږی | اودالله ﷻ یوه نښه داده | ......چې ته زمکه | | |
| تَرَى الْاَرْضَ | خَاشِعَةً | فَاِذَآ | اَنْزَلْنَا | عَلَيْهَا | الْمَآءَ |
| وینې زمکه | او دهٔ (یعنی وچه) | پس کله چې | نازلې کړې مونږه | په هغې باندې | اوبهٔ |
| اوچه (خشکه) وینی | خو کله چې پرې مونږ اوبه نازلې کړو | نو هغه راپوړته شی | | | |

[1] ابوداؤد كتاب الصلاة باب من رای الاستفتاح بسبحانك....:۷۷۵وسنده حسن
[2] ۷/الاعراف:۱۹۹.
[3] آیت:۹۶.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اهْتَزَّتْ | وَرَبَتْ ۖ | اِنَّ الَّذِيْٓ | | اَحْيَاهَا |
| نو اوخوزیده (تازه شوه) | اواوپړسیدله | بیشکه هغه ذات | | چې ژوندۍ نې کړه دا زمکه |
| اوتازه شي او اوپړسیږي ............ | | بیشکه کوم ذات چې زمکه ژوندۍ کړه | | هغه د مړو |
| لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۖ | اِنَّهٗ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | | قَدِيْرٌ ۝ |
| خامخا ژوندي کونکې دی د مړو | بیشکه هغه | په هر خیز باندې | | قادر دی |
| ژوندي کونکې هم دی | په دې کښې شک نشته چې هغه په هر څه قادر دی | | | |

قوله تعالى:: وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ وَالنَّهَارُ

**ورځ شپه نمر سپوږمئ هغه جوړ کړي دي:-** الله تعالى خپل مخلوق ته خپل عظيم الشان قدرت اوبې مثال طاقت ښائي چه هغه څه کول غواړي نوکوي. نمرسپوږمئ ورځ شپه د هغه د کامل قدرت نښې دي. شپه د هغې دتيارو سره ورځ د هغې درڼراګانوسره هغه جوړکړي دي.څنګه يوبل پسې راځي.نمر او دهغې رڼراته اوسپوږمئ اودهغې پړق ته ګوره اودهغې نورانيت ته اوګوره د هغې هم منزلونه او آسمان مقرردي.دهغوي په راختواودوبېدوسره دورځې اوشپې فرق دي.دمياشتواوکالونوشمير معلوميږي. د کوم نه چه عبادتونومعاملاتو اودحقوقو ادائيګي کيږي.په آسمان اوزمکه کښې دټولو نه زيات ښائسته نمر اوسپوږمئ وو په دې وجه ئې دا په خاص توګه باندې، په خپل مخلوق کښې اوخودل اوئې فرمائيل چه که داالله تعالى بنديګان ئې نودنمراوسپوږمئ په وړاندې تندي مه.لګوه څکه چه دامخلوق دي. مخلوق دسجدې کولوقابل نه وي دسجدې کولو لائق هغه ذات دې چه دټولو خالق دې.تاسودالله تعالى عبادت کوئې خوکه تاسو د هغه نه بغيرد هغه دمخلوق هم عبادت اوکړو نوتاسو به د هغه په نظر کښې پريوځئې اوبيابه هغه کله هم تاسواونه ښئې.کوم خلق چه صرف دهغه عبادت نه کوي بلکه د نورو هم عبادت کوي هغوي دې دا نه ګڼړي چه د الله تعالى عبادت کونکې هم دوي دی که هغه د دوی عبادت پريږدي نوبل څوک به د هغه عبادت کونکې پاتې نه شي. نه نه الله تعالى خود هغوي د عبادتونونه بې پرواه دي. دهغه فرښتې شپه ورځ دهغه په ذکرکښې اودهغه په خالص عبادتونوکښې بې ستومانتيا اوبې سترې کيدوهر وخت مشغول دی. لکه چه په بل آيت کښې دی چه که دوی کفر اوکړی نومونږ يوقوم داسې هم مقررکړي دي چه کفر به نه کوي. حضورﷺ فرمائي چه شپې ته ورځې ته نمر سپوږمئ ته اوهوا ته بد مه وائې دا څيزونه د بعضې خلقو د پاره رحمت اود بعضو د پاره زحمت وي. (١)د هغه دومره نښې چه هغه مړې ژوندی کولې شی که کتل غواړئې نود مړې زمکې په باران سره راژوندی کيدل اوګورئې چه هغه اوچه شاړه بې وابنووی. باران وريدوسره فصلونه ميوې شينکې وابنه اوګلونه وغيره راټوکيږي. اوهغه په يوعجيبه انداز کښې د خپل شينکی سره خوزيږي. دا راژوندئی کونکې به تاسو هم راژوندی کړی يقين اوکړئی که هغه غواړی نود هغه په قدرت کښې شته.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ | يُلْحِدُوْنَ | | فِيْٓ اٰيٰتِنَا | لَا يَخْفَوْنَ | عَلَيْنَا ۖ | اَفَمَنْ |
| بيشکه هغه کسان چې اوړی دحق نه باطل ته | | | په آيتونوزمونږ | کښې | نه دی پټ په مونږ باندې | آيا پس هغه څوک |
| کوم خلق چې زمونږ په آيتونو کښې ګمراهي اختياروي | | | | هغوئ زمونږ نه پټ نه دی | | نو آيا څوک چې اورته |

(١) مسندابي يعلى: ٢١٩٤ المعجم الاوسط: ٦٧٩١، مجمع الزوائد: ٧١/٨.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يُّلْقٰى | فِي النَّارِ | خَيْرٌ | اَمْ مَّنْ | يَّاْتِيْٓ | اٰمِنًا | |
| چي غورزولي كيږي به اېه وور كښي | هغه بهتر دي | ايا هغه څوك | چي راځي به اېه حالت دامن كښي | | | |

اوغورځولى شي ...................هغه ښه شو يا څوك چې دقيامت په ورځ په امن اوامان

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ط | اِعْمَلُوْا | مَا شِئْتُمْ لا | اِنَّهٗ | بِمَا | تَعْمَلُوْنَ | |
| په ورځ دقيامت | عمل كوئ | هغه چي غواړئ تاسو | بيشكه هغه | په هغه څه | چي تاسو ئي كوئ | |

(الله ﷻ ته مخامخ) پيش شي | ستاسو چې څه زړه غواړي هغه كوئ | بيشكه الله تعالى ستاسو د كړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَصِيْرٌ ۝ | اِنَّ الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | بِالذِّكْرِ | لَمَّا | |
| ليدونكي دي | بيشكه هغه كسان | چي انكار ئي اوكړو | د ذكر (نصيحت) نه | هر كله چي | |

ليدونكي دي | كوم خلق چې ددې قران نه څه وخت چې دوئ ته راغلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| جَآءَهُمْ ج | وَاِنَّهٗ | لَكِتٰبٌ | عَزِيْزٌ ۝ لا | لَّا يَاْتِيْهِ | الْبَاطِلُ |
| راغي هغوئ ته | او بيشكه هغه | خامخا كتاب دي | قوى | چي نه شي راتلي هغه ته | باطل |

انكار اوكړو (برباد شول) اوداقران ډير دعزت كتاب دي | چې غلطه خبره ورته نه د وړاندې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ | وَلَا مِنْ خَلْفِهٖ ط | تَنْزِيْلٌ | مِّنْ حَكِيْمٍ | |
| دمخكښې طرف ددې نه | اونه دروستو طرف ددې نه | نازل كړې شوې دي | دطرفه ديو حكيم | |

نه راتلي شي | اونه د روستو نه | داد حكمت والا او ستائيلى شوي (الله ﷻ) نازل شوې (كتاب) دي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَمِيْدٍ ۝ | مَا يُقَالُ | لَكَ | اِلَّا مَا | قَدْ قِيْلَ | لِلرُّسُلِ |
| ستائيلي شوى الله نه | نه ونيلي كيږي | تاته | مگر هغه څه | چي ونيلي شوى دى | رسولانوته |

.........تاته هم هغه شان خبرې كولې شي | څنگه چې ستانه وړاندې پيغمبرانو ته ونيلي شوې وې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ قَبْلِكَ ط | اِنَّ رَبَّكَ | لَذُوْ مَغْفِرَةٍ | وَّذُوْ عِقَابٍ اَلِيْمٍ ۝ | |
| مخكښې ستانه | بيشكه رب ستا | خاوند دبښني دي | او وركونكي دعذاب دردناك دي | |

........ | بيشكه ستارب ښونكي دي | ...............او ددردناك عذاب خاوند هم دي

**قوله تعالى:: اِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا**

**ملحدينو ته رټنه او دعذاب نه ويره :-** د **(الحاد)** معنى دابن عباس ﷺ نه دكلام دهغه ځاىٔ نه اخواكول او بل ځاىٔ كښې كيخودل مراد دى.اود قتاده ﷫ وغيره نه معنى كفر اوعناد دي.فرمائي چه ملحدان خلق زمونږنه پټ نه دى.زمونږ اسماء اوصفات ديوځاىٔ نه بل ځاىٔ ته كونكي زمونږ په نظر كښې دى.هغوى ته به مونږډيره خرابه سزاوركړو.پوهه شئ چه دوزخ ته حواله كيدونكي اود ټولوخطرونه بچ كيدونكي برابردي؟هيڅ كله نه.بدكارو كافرانوچه څنگه عمل كول غواړئ كوئ زمانه ستاسو هيڅ يوعمل پټ نه دي. دباريك نه باريك څيز هم زما د نظرنه پټ نه دي.د **(ذكر)** نه مراد د ضحاك سدى اوقتاده ﷫ په نيز قرآن پاك دي هغه په عزت اوپه درناوى دي.ددي په شان د هيڅ چا كلام نشته. ددي نه وړاندې روستو يعنى ديوطرف نه هم دي كښې باطل نه شي ملاويدلي.دادرب العالمين دطرفنه نازل كړې شوې دي.

چه په خپلو اقوالو او افعالو کښې حکيم دې. دغه ټول حکم احکام د بهترين انجام والادی. تاته چه ستا د زمانې کافران څه وائی هم دغه تانه وړاندې پيغمبرانوته هم د هغوی امتونونيلی وو نوچه څنګه دې پيغمبرانوصبراوکړوته هم صبر کوه. ځوك هم چه ستا درب طرف ته رجوع اوکړی هغه د ده د پاره د ډيرې ښېګڼې والادې اوځوك چه پخپل کفراوضد باندې کلك وی دحق د مخالفت اود رسول دتکذيب نه نه منع کيږی په هغه باندې الله تعالی ډير سختې سزاګانې کونکې دې. رسول الله ﷺ فرمائی که دالله تعالی معافئی اوبښنې نه وې نوپه دنياکښې به يوکس هم ژوندې نه وو پاتې شوې اوکه دهغه رانيول راګيرول عذابونه اوسزاګانې نه وې نوهرسړی به ښه په تسلئی سره ډډه لګولې بې ويرې ناست وو.

وَلَوْ جَعَلْنٰهُ قُرْاٰنًا اَعْجَمِيًّا لَّقَالُوْا

او که جوړ کړی وې مونږه دا کتاب | قران | عجمی | نو خامخا به وئيلي دې خلقو |

او که مونږ دا قران پاک په عجمی (ژبه کښې) رالیږلی وې | نو دوئ به وئیل چې

لَوْلَا فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ ؕ ءَاَعْجَمِيٌّ وَّعَرَبِيٌّ ؕ

ولې واضحه بيان نه کړې شو | ايتونه دده | ايا کتاب عجمی دې | او مخاطب عربی دې |

ددې ایتونو ولې صفا صفا نه دی بیان شوی | دالا څنګه خبره ده چې (کتاب) عجمی او (پیغمبر) عربی دې

قُلْ هُوَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هُدًى وَّشِفَآءٌ ؕ

ورته اووایه | دا قرآن | دپاره دهغه کسانو | چی ایمان ئې راوړې دې | هدایت دې | او شفا ده |

(اے نبی ﷺ) ته ورته اووایه | چې دا کتاب ایماندارو دپاره هدایت او شفاء ده

وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْۤ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ

او هغه کسان | چی ایمان نۀ راوړی | په غوږونو دهغوئ کښی | درونوالي دې | او دا |

اوځوك چې ایمان نه راوړی | د هغوئ په غوږونو کښې کونړوالي دې | ..........او

عَلَيْهِمْ عَمًى ؕ اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍۭ

په هغوئ باندې | پټې ده | دا کسان چې دی | الکه چې اواز کیدې شی دوئ ته | دخانې

قران پاک دهغوئ په حق کښې ړوندوالي دې | داهغه کسان دی چې د ډيرې لرې ځائې نه

بَعِيْدٍ ۟ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِ ؕ

لرې نه | او ورکړې وو مونږه | موسی ته | کتاب | پس اختلاف اوکړې شو | په هغې کښې

ورته اوازکولې شی | او مونږ موسی ﷺ ته کتاب ورکړې وو | بیا په هغې کښې هم اختلاف اوکړې شو

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ

اوکه نه وې خبره | رومبې مقرر شوی | دطرفه درب ستانه | نو خامخا به فیصله شوی وه |

اوکه چرې ستا درب د طرفه یوه خبره د وړاندې نه فیصله شوې نه وه | نو ددوئ معامله به

بَيْنَهُمْ ؕ وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ۟

په منځ ددوئ کښې | او بیشکه دوئ | خامخا په شك دی | دطرفه دهغه نه | په شك پریشانه کونکی کښې

خلاصه شوې وه | او دوئ ددې کتاب په حق کښې په شك کښې پریشانه پراته دی

**قوله تعالى:: وَلَوۡ جَعَلۡنَٰهُ قُرۡءَانًا أَعۡجَمِيًّا**

**د قرآن پاک ژبه عربي ولې ده؟** :-دقرآن كريم فصاحت اوبلاغت ددې حكم احكام ددې لفظ اومعنوى فوائد بيانولې شي پدې باندې ايمان نه لرونكوسركشي ضداودښمني بيانولې شي.لكه چه بل آيت كښې ارشاددې ﴿وَلَوۡ نَزَّلۡنَٰهُ عَلَىٰ بَعۡضِ ٱلۡأَعۡجَمِينَ ۝ فَقَرَأَهُۥ عَلَيۡهِم مَّا كَانُواْ بِهِۦ مُؤۡمِنِينَ ۝﴾ ([1])مطلب دادې چه دنه منلوشل بهانې دي نه يوچينګ اونه بل چينګ.كه قرآن پاك چرته په عجمي ژبه كښې نازل شوې وو نو بهانې به ئې كولې چه مونږ خو په دې باندې صفاصفا نه پوهيږو. مخاطب چه كله د عربي ژبې دى نو په دوى باندې په غيرعربي ژبه كښې كتاب ولې نازليږي؟ اوكه څه په عربي كښې وو اوڅه په بل ژبه كښې نو بيابه هم د دوى هم دغه اعتراض وو چه د دې څه وجه ده؟دحسن بصري رحمه الله قراءت ﴿ءَاعۡجَمِيٌّ﴾ دې. سعيدبن جبير رحمه الله هم دغه مطلب بيانوي. د دې نه د هغوى سركشي معلوميږي. بياارشاد دې چه دا قرآن پاك د ايماندارو د زړه هدايت اود هغوى دسينو شفا ده.دهغوى ټول شكونه په دې سره ختميږي. دچاچه په دې باندې ايمان نشته نوهغوى خو په دې باندې پوهيدې نه شي لكه چه څوك كونړوي. اونه د دې د بيان طرف ته د هغوى هدايت وى لكه ړوند. بل آيت كښې دى ﴿وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلۡقُرۡءَانِ مَا هُوَ شِفَآءٞ وَرَحۡمَةٞ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ وَلَا يَزِيدُ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا خَسَارٗا ۝﴾ ([2])زمونږ نازل كړې شوې داقرآن پاك د ايماندارو د پاره شفا اورحمت دې. اوظالمانو خودې سره نقصان زياتيږي. ددې مثال داسې دې لكه چه څوك د لرې نه چاته څه وائي چه نه دهغوى غوږونوته صحيح الفاظ اورسي اونه هغوى په صحيح توګه په مطلب باندې پوهيدې شي.لكه چه بل آيت كښې دى﴿وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ كَمَثَلِ ٱلَّذِي يَنۡعِقُ بِمَا لَا يَسۡمَعُ إِلَّا دُعَآءٗ وَنِدَآءٗۚ صُمُّۢ بُكۡمٌ عُمۡيٞ فَهُمۡ لَا يَعۡقِلُونَ ۝﴾ ([3])يعني دكافرانومثال دهغوى په شان دې چه آوازكوى او وازنه بغيرنېل څه دهغوى په غوږكښې نه پريوځي.كانړه ګونګيان اوړانده دي بيابه څنګه پوهه شي؟ضحاك رحمه الله دامطلب بيان كړې دې چه د قيامت په ورځ به دوى د هغوى په خرابو ناموسره رابللې شي.عمر بن خطاب رضي الله عنه يو مسلمان سره ناست وو چه هغه فيصلې كولې.هغه ناڅاپى لبيك لبيك چغې كړې.هغوى اوفرمائيل تاته څه ښكاري ياتاته څوك آوازكوى؟ هغه ونيل اودسمندرد اخواغاړې نه څوك رابلل كوى نوهغوى هم دا جمله اولوستله ﴿أُوْلَٰٓئِكَ يُنَادَوۡنَ مِن مَّكَانِۭ بَعِيدٖ ۝﴾ ([4]) (ابن ابى حاتم)

بيا فرمائي چه مونږ موسى عليه السلام ته كتاب وركړو خو په دې كښې هم اختلاف اوكړې شو هغه ئې هم دروغ اوګنړلو او په تكليف ئې كړو.نوچه څنګه هغه صبراوكړو دغه شان تاته هم صبركول پكاردي. ستا رب د دې د اول نه فيصله كړې ده چه د يومقرروخت پورې يعني د قيامته پورې به عذاب اخواوي. د دې دپاره چه دامهلت ماوركړې دې ګني دهغوى كړه داسې نه ووچه پريخودې شوې وې اوخوراك خښناك دې كولې چه هم اوس هلاك كړې شوې وې. دوى پخپل تكذيب كښې هم په څه يقين باندې نه دى بلكه په شك كښې پراته دى اوګدوډ كيږي. والله اعلم.

| مَنۡ عَمِلَ | صَٰلِحٗا | فَلِنَفۡسِهِۦۖ | وَمَنۡ أَسَآءَ |
|---|---|---|---|
| چاچي عمل اوكړو | نيك | پس وې كړه دپاره دخان خپل | او چاچي بدعملي اوكړه |
| چاچي نيک عمل اوكړو | نو فائده هم هغه ته ملاويږي | .............. | اوچاچي ګناه اوكړه |

[1]) ٢٦/الشعراء: ١٩٨-١٩٩.
[2]) ١٧/الاسراء: ٨٢.
[3]) ٢/البقرة: ١٧١.
[4]) ٤١/حم السجدة: ٤٤.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَعَلَيْهَا ۗ | وَمَا رَبُّكَ | بِظَلَّامٍ | لِّلْعَبِيدِ ۝ | |
| نو سزا ئې په هغه باندې ده | اونه دی رب ستا | ظلم کونکې | بندگانو لره | |
| نقصان ئې هم هغه ته رسیږی | او ستا رب په خپلو بندگانو زیاتې کونکې نه دې | | | |

**کافر ته د خپل عمل بدله او مسلمان ته دخپل عمل بدله:**: د دې ایت مطلب ډیرښکاره دې د نیکو کونکو اعمالوفائده هم هغوی ته وی اود بدئی کونکی د بدئی نقصان هم دُ هغه طرف ته ورکرځی. د پروردګار ذات د ظلم نه پاك دې. د یوپه ګناه باندې هغه بل نه رانیسی. د نه کړې شوې ګناه سزا هغه نه ورکوی. اول خپل رسول لیګی بیا کتاب نازلوی خپل حجت ختموی خپلې خبرې وورسوی نو چه اوس هم څوك اونه منی نوهغه د عذاب اوسزا مستحق دې.

**(الحمدلله)** د څلیریشتمې سپارې تفسیر ختم شو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَيْهِ | يُرَدُّ | عِلْمُ السَّاعَةِ ط | وَمَا تَخْرُجُ | مِنْ ثَمَرٰتٍ |
| خاص هغه ته | واپس کړې کیږي | علم دقیامت | اونهٔ راوځي | دمیووٴ نه |

دقیامت علم صرف الله ﷻ سره خاص دي (بل چاته د دې علم نشته) | او کومه میوه چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ أَكْمَامِهَا | وَمَا تَحْمِلُ | مِنْ أُنْثٰى | وَلَا تَضَعُ | إِلَّا |
| دغلا فونو(قوخلو)خپلو ته | اونهٔ حامله کیږي | یوه ښځه | اونهٔ زیږوي یو بچي | مګر |

دخپلو غلافونو نه راوځي | یا کومه یوه ښځه چې حامله کیږي | یا بچي راوړي | نودا ټول

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِعِلْمِهٖ ط | وَيَوْمَ يُنَادِيْهِمْ | أَيْنَ | شُرَكَآءِيْ لا |
| په علم دهغه کښې دي | او په کومه ورځ چې آواز اوکړي دوئ ته | چې کوم ځاني دي | شریکان زما |

هغه ته معلوم دي|اوپه کومه ورځ چې به الله ﷻ دوی ته اواز اوکړي| چې زما شریکان څه شول؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالُوْٓا | اٰذَنّٰكَ لا | مَا مِنَّا | مِنْ شَهِيْدٍ ج |
| اوبه وائي دوئ | خبر درکړو مونږ تاته اوس | چې نشته زمونږ نه | هیڅوک ګواه ددې خبرې |

هغوی به اووائی چې مونږ تاته خبر درکوو| چې په مونږ کښې هیڅ څوک د دې ګواه نشته ؟؟

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَضَلَّ | عَنْهُمْ | مَّا | كَانُوْا يَدْعُوْنَ | مِنْ قَبْلُ |
| او ورك به شي | ددوئ نه | هغه ټول | چې وو دوئ چې رابلل به دوئ | مخکښې ددې نه |

اودوی چې به وړاندې دکومو معبودانو عبادت کولو هغه ټول به ترې ورک شي |

| | | |
|---|---|---|
| وَظَنُّوْا | مَا لَهُمْ | مِّنْ مَّحِيْصٍ |
| او پوهه به شي | چې نشته دوئ لره | خاني دتیښتې |

اوپوهه به شي چې اوس د خلاصي هیڅ لار نشته

**قوله تعالٰی: إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ ط**

**د قیامت او د هر څیز علم الله ﷻ سره دي:** الله رب العزت فرما نی چه قیامت به کله راځي؟ ددې علم د هغه نه سوا بل چا ته نشته دټولو انسانانو سردار حضرت محمد مصطفی ﷺ نه د فرشتو په سردارانو کښې یو سردار حضرت جبرانیل ﷺ د قیامت د راتلو په باره کښې تپوس اوکړو نو نبي ﷺ اوفرمائیل چه دچا نه تپوس کولې شي هغه ته هم د تپوس کولو والا نه زیات نه دی معلوم (¹) د قرآن کریم یو بل آیت کښې دی ﴿إِلٰى رَبِّكَ مُنْتَهٰهَا﴾ یعنی قیامت به کله راځي؟ددې د علم دارومدار هم ستاد رب طرف ته دې دغه شان الله ﷻ یو بل ځاني فرمائی﴿اللهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنْثٰى﴾مطلب هم دا دی چه د قیامت وخت الله ﷻ نه سوا بل څوک نه پیژنی بیا فرمائی چه هر څیز دالله علم په احاطه کښې اخستې دې تردې پورې چه کومه میوه د غوټو نه راوځي کومې ښځې ته به حمل وی کوم بچے به ددې نه وی دا ټول د هغه په علم کښې دی د زمکې او د اسمان یوه ذره هم د هغه د علم د وسعت نه باهر نه ده . بل آیت کښې دی ﴿لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ إِلَّا هُوَ﴾ هر ماده ښځې ته چه کوم حمل وی او رحم چه کوم کمې زیاتې کوی الله ﷻ ته ډیر ښه معلوم دی .هغه سره د هر څیز اندازه ده عمرونه چه کمیږی او زیاتیږی هغه هم په کتاب کښې لیکلې

---

(¹) صحیح بخاری کتاب الایمان باب سوال جبریل النبی ﷺ عن الایمان والاسلام : ۵۰ ، صحیح مسلم: ۹.

شوی دی داسې هیڅ نشته چه الله ﷻ باندې مشکل وی . د قیامت په ورځ به مشرکانو نه د ټول خلقو په مخکښې الله ﷻ سوال کوی چه څوك تاسو ماسره په عبادت کښې شریك کول هغه نن چرته دی؟هغوی به جواب ورکوی چه مونږ خو تاسو ته اوخودله چه نن مونږ کښې به څوك هم ددې اقرار نه کوی چه څوك ستا شریك هم شته . نن ددوی ټول باطل خدایان ورك شوی دی څوك به هم په نظر نه راځی چه دوی ته فائده اورسوی او دوی پخپله پوهه شی چه نن د الله د عذاب نه د خلاصی هیڅ صورت نشته .دلته ظن د یقین په معنی کښې دې.

د قرآن کریم یو بل آیت کښې دا مضمون دا شان بیان شوې دې ﴿وَرَاَ الْمُجْرِمُوْنَ النَّارَ فَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مُّوَاقِعُوْهَا وَلَمْ يَجِدُوْا عَنْهَا مَصْرِفًا﴾دانسان مایوسی او طمع . الله ﷻ بیان فرمائی چه مال صحت وغیره د خیر دعاګانو نه خو سرې نه ستړې کیږی او که چرې په ده باندې څه مصیبت راشی یا د لوږې څه موقعه راشی نو دومره زیات پریشانه او مایوسه شی چه اوږ خیر به بیا مومی نه.او که چرې څه تنګئی یا سختې نه پس ده ته څه راحت ملاو شی نو دا وائی چه دا خو الله ﷻ باندې زما حق وو زه هم ددې قابل وم .اوس په دې نعمت خوشالیږی الله رب العزت هیروی او صفا منکر جوړ شی د قیامت د راتلو صفا انکار کوی مال او دولت آرام او راحت دده د کفر سبب جوړ شی.

| | |
|---|---|
| الْاِنْسَانُ | لَا يَسْـَٔمُ |
| انسان | نۀ ستړې کیږی |
| | .... انسان د خیر په دعا غوښتلو نه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَنُوْطٌ ۝ | فَيَـُٔوْسٌ | الشَّرُّ | وَاِنْ مَّسَّهُ | الْخَيْرِ | مِنْ دُعَآءِ |
| ډیر نا امیده | نو هغه نا امیده وی | مصیبت | او که اورسیږی هغه ته | | دغوښتلو دخیر نه |
| | | | ستړې کیږی\|او که چرې څه تکلیف ورته اورسنی \| نو بیا مایوسه او ناامیده شی | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَسَّتْهُ | ضَرَّآءَ | مِنْۢ بَعْدِ | مِّنَّا | رَحْمَةً | وَلَئِنْ اَذَقْنٰهُ |
| اچی رسیدلی وی هغه ته | سختې نه | اروستودهغې | دطرفه زمونږ نه | رحمت | اوکه اوخکوومونږ هغه ته |
| | | | | | اوکه چرته مونږ پرې د خپل رحمت نه څه اوکړو\| د یو داسې مصیبت نه پس چې رسیدلې وو ورته\| نو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَّلَئِنْ | قَآئِمَةً ۙ | السَّاعَةَ | وَمَآ اَظُنُّ | هٰذَا لِيْ ۙ | لَيَقُوْلَنَّ |
| او که | چې رابه شی | په قیامت | اونهٔ کوم زهٔ ګمان | دا لائق دې مالره | نو خامخا اوبه وائی |
| | | | | | بیا وائی چې داخو زما خپل کمال وو\| اوزهٔ دا نه ګنړم چې قیامت راتلونکې دې\| اوکه چرته زهٔ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَلْحُسْنٰى ۚ | عِنْدَهٗ | اِنَّ لِيْ | اِلٰى رَبِّيْٓ | رُّجِعْتُ |
| خامخا ښې مزې | دهغه سره | بیشکه مالره دی | رب خپل ته | واپس کړې شوم زهٔ |
| | | | | هلو الله ﷻ ته واپس کړې شم\|............... نو هلته به هم زما ښه حالت وی\| |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِمَا عَمِلُوْا ۡ | كَفَرُوْا | الَّذِيْنَ | فَلَنُنَبِّئَنَّ |
| په هغه عمل چې کړې دې هغوئ | اچې کفر ئې کړې دې | هغه کسانو ته | پس خامخابه خبر ورکوو مونږه |
| | | | مونږ به کافرانو ته دهغوئ د هر یو عمل خبر ورکړو (چې تاسوپه دنیا کښې دا دا کارونه کړې وو) |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَنُذِيقَنَّهُمْ | مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ۝ | وَإِذَآ | أَنْعَمْنَا | |
| او خامخا به مونږ څکوو هغوئ ته | دعذاب ګنده نه | او کله چې | انعمت او کړو مونږه | |
| او دسخت عذاب مزه ورباندې او څکوو | ............................ | او کله چې مونږ په يو انسان باندې | | |
| عَلَى الْإِنسَانِ | أَعْرَضَ | وَنَأَىٰ بِجَانِبِهِۦ | وَإِذَا | مَسَّهُ |
| په انسان باندې | نو مخ واړوو هغه | او لرې ئې کړو اړخ خپل | او کله چې | او رسی هغه ته |
| نعمتونه او کړوا .نو دې مخ واړوی | او ډډه او کړی | ............................ | او څه وخت چې (لږډير) تکليف | |
| الشَّرُّ | فَذُو | دُعَآءٍ عَرِيضٍ۝ | | |
| تکليف | نو دې خاوند | ددعا | اوږدې وی | |
| ورته اورسيږی | نو بيا دې اوږدې دعاګانې کونکې وی | | | |

قوله تعالى::لَا يَسْـَٔمُ الْإِنسَانُ مِن دُعَآءِ الْخَيْرِ

**دانسان خودغرضی:-** څنګه چه يو بل آيت کښې دی ﴿كَلَّآ إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰٓ۝ أَن رَّءَاهُ اسْتَغْنَىٰٓ۝﴾ بيا فرمائی چه په دې هم بس نه بلکه دې بدعملونو باندې د خير اميد هم ساتی او وائی که چرې قيامت هم راغللو او څه هلته اودرولې شوم نو چه څنګه دلته په آرام سره يم هلته به هم په آرام سره يم غرض د قيامت انکار هم کوی د مرګ نه پس ژوند هم نه منی او بيا غټ غټ اميدونه هم ساتی او وائی چه څنګه دلته يم دغه شان به هلته هم يم.بيا دې خلقو لره يروی چه د چا دا اعمال او عقيدې وی هغوی ته به مونږ سخته سزا ورکوو. بيا فرمائی چه انسان هر کله د الله نعمتونه بيا مومی نو اطاعت پريږدی او د منلو نه انکار کوی څنګه يئ چه اوفرمائيل ﴿فَتَوَلَّىٰ بِرُكْنِهِۦ﴾اوهر کله چه ده ته څه نقصان اورسی نو لوې لوې دعاګانې غواړی .عريض کلام هغه وی چه الفاظ ئی ډير وی او معنی ئی ډيره کمه وی او چه کوم کلام ددې خلاف وی يعنی الفاظ ئی کم وی اومعنی ډيرې نو هغې ته وجيز کلام وائی هغه ډير کم او ښه کافی وی.هم دامضمون يو بل ځائې داسې بيان کړې شوې دې ﴿وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنۢبِهِۦٓ﴾هر کله چه انسان ته څه مصيبت اورسی نو په ملاسته ناسته او په ولاړه غرض هر وخت مونږ نه دعاګانې غواړی اوهر کله چه هغه تکليف مونږ لرې کړو نو داسې بې پرواه شی چه ده اوډ د مصيبت په وخت کښې مونږ نه دعا غوستې نه وی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | قُلْ | أَرَءَيْتُمْ | | | |
| | ورته اووايه | ايا کتل کړی دی تاسو په سوچ سره | | | |
| | (دائې نبی ﷺ ته ورته اووايه چې په دې | | | | |
| إِن كَانَ | مِنْ عِندِ اللَّهِ | ثُمَّ | كَفَرْتُم | بِهِۦ | مَنْ أَضَلُّ |
| که وی( دا قران) | دطرفه دالله نه | بيا | انکار اوکړئ تاسو | په هغې سره | څوک به وی ډير بې لارې |
| مې پوهه کړئ که داکتاب دالله ﷻ دطرفه راغلې وی | او تاسو ترې نه انکار او کړئ | نو دهغه سړی نه غټ | | | |
| مِمَّنْ | هُوَ فِى شِقَاقٍۭ | بَعِيدٍ۝ | سَنُرِيهِمْ | ءَايَـٰتِنَا | |
| دهغه چانه | چې هغه په مخالفت | لرې کښې وی | زر به مونږ اوښايو دوئ ته | نښې خپلې | |
| ګمراه به څوک وی | چې دومره لرې مخالفت کښې پروت وی | مونږ به دوئ ته په چارچاپير کښې | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِى الْاٰفَاقِ | وَفِىٓ اَنْفُسِهِمْ | حَتّٰى | يَتَبَيَّنَ | لَهُمْ |
| په خواوشا دنیا کښې \| او په نفسونو ددوي کښې \| تر دې پورې \| چې ښکاره شي \| دوئ ته \| | | | | |
| خپلې نښې اوښايو\| او ددوئ په خپل ذات کښې به ورته هم اوښايو\| تردې چې دا به ورته ثابته شي | | | | |
| اَنَّهُ | الْحَقُّ ط | اَوَلَمْ يَكْفِ | بِرَبِّكَ | اَنَّهُ |
| چې بيشکه دا قرآن \| حق دې \| آيا کافي نه ده \| رب ستالره دا خبره \| چې بيشکه هغه \| | | | | |
| چې داکتاب حق دې \| ايا ستا د رب دا خبره کافي نه ده \| چې هغه پخپله په هر څيز | | | | |
| عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ | شَهِيْدٌ ۞ | اَلَآ | اِنَّهُمْ | فِىْ مِرْيَةٍ | مِّنْ لِّقَآءِ |
| په هر څيز باندې \| شاهد(ليدونکې) دې \| خبردار \| بيشکه دوئ \| په شك کښې دي \| دملاقات \| | | | | |
| باندې ګواه دې \| .....................ياد ساته چې داخلق خپل رب ته دمخامخ کيدو په حق کښې | | | | |
| رَبِّهِمْ ط | اَلَآ | اِنَّهُ | بِكُلِّ شَىْءٍ | مُّحِيْطٌ ۞ ع |
| درب خپل نه \| خبردار \| بيشکه هغه \| په هر څيز باندې \| چاپيره دې \| | | | | |
| په شك کښې پراته دي\| (خو) ياد ساته چې هغه دهر څيز نه راچاپيره دې | | | | |

قوله تعالى:: قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

**دقرآن د حقانيت نه انکار :-** الله ﷻ خپل نبي ته فرمائي چه قرآن دروغژن ګڼړلو والا مشرکانو ته اووايه چه دا اومنې که دا قرآن په رښتيا هم د الله ﷻ د طرف نه وي او تاسو دا دروغ ګڼړي نو د الله ﷻ مخکښې به ستاسو څه حال وي؟ددې نه لوې ګمراه به بل څوك وي چه دخپل کفر اومخالفت په وجه د حق اود هدايت لارې نه ډير لرې غورزيدلي وي.

قوله تعالى:: سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا فِى الْاٰفَاقِ

**ددې ايت مبارك نه څوك مراد دي؟::** بيا الله رب العزت فرمائي چه د قرآن کريم د حقانيت نښې اودليلونه به دوي ته ددنيا په څلور وانړه طرف ته اوښائي مسلمانانو ته به فتوحات اوشي هغوی به د ملکونو بادشاهان جوړشي ټولو دينونو باندې به د دين اسلام غلبه وي .د فتح بدر اوفتح مکه نښې به هم دوی په خانونو کښې وی چه دا خلق به په تعداد او شان وشوکت کښې ډير زيات وی بيا به هم يو موټې اهل حق دوی ته ماتې ورکړی.او کيدې شي دا مطلب وی چه د حکمت الهي زرګونو نښې پخپله د انسان په خپل وجود کښې موجود دی ددې بناوټ ددې جوړخت او طبيعت ددې بيل بيل اخلاق او مختلف صورتونه اورنګونه وغيره ددې خالق او صانع بهترين يادګارونه هروخت ددوی مخښې ته دی بلکه د دوی په ذات کښې موجود دی .ددې بدليدل را بدليدل کله ورکوالې کله خواني کله بوډاتوب کله بيماری کله تندرستي کله غم کله خوشالي وغيره دا ټول اوصاف چه ده باندې راځي.

شيخ ابو جعفر قرشي هم خپلو اشعارو کښې هم دا مضمون ادا کړې دې .غرض د قدرت دنښې چه څه باهراوڅه دننه دی دومره زياتې دی چه انسان د الله خبرې حق منلو باندې مجبوره شي .هم د الله ﷻ ګواهي بس ده او ښه کافي ده هغه د خپل بندګانو د اقوالو او افعالو نه ښه خبرداره دې هر کله چه هغه فرمائي چه پيغمبررشتونې دې بيا تاسو ته څه اوشو لکه څنګه چه ارشاد دې﴿لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَآ اَنْزَلَ اِلَيْكَ اَنْزَلَهٗ بِعِلْمِهٖ﴾ خو الله ﷻ ددې کتاب په ذريعه کوم چه نې تا ته درليږلې دې او خپل علم سره نې نازل کړې دې پخپله ددې ګواهي ورکوی او فرښتې ددې تصديق کوی او د الله ﷻ ګواهي کافي ده .بيا

فرمائي چه اصل کښې دې خلقو ته د قيامت د قائميدو هډو يقين نشته ددې وجې بې فکره دي نيکو نه غافله دي د غلط کارونو نه خان نه ساتي حالانکه د قيامت راتلل يقيني دي.
ابن ابى دنيا کښې دى چه خليفة المسلمين حضرت عمر بن عبد العزيز په ممبر باندې اوختلو او د الله ﷻ حمد و ثنا نه پس يې اوفرمائيل چه اې خلقو ما تاسو څه نوې خبرې د پاره نه يې جمع کړې صرف د دې دپاره مې جمع کړې يې چه تاسو ته دا واوروم چه د قيامت د ورځ په باره کښې ما ښه غوراوکړو او څه په دې نتيجې باندې اورسيدم چه دا رشتيا ګڼړلو والا احمق دې او دا دروغ ګڼړلو والا هلاک کيدو والا دې بيا هغوى د ممبر نه راکوز شو. دهغوى ددې وينا چه قيامت رشتيا ګڼړلو والا احمق دې ددې دا مطلب دې چه رشتيا يې ګڼړى بيا هم تيارى نه کوى او ددې زړه درزولو والا هيبتناک حالاتو نه غافل دې چه ددې نه يريدو په وجه هغه اعمال نه کوى چه ده ته ددې د ورځې نه امن ورکړى. بيا خان ته ددې رشتيا ګڼړلو والا هم وائى او لوبو ټوقو ګناه شهوت او حماقت کښې اخته دې او قيامت ته نزدې وررون دې. والله اعلم.
بيا رب العالمين خپل قدرت کامله بيان فرمائي چه هر څيز د هغه په احاطه کښې دې د قيامت راوستل هغه ته ډيراسان دى ټول مخلوق د هغه په قبضه کښې دې چه څه غوارى هغه کوى څوک هم دهغه لاس رانيوې نشى. څه چه هغه اوغوستل هغه اوشو څه چه به غوارى هغه به کيږى. دهغه نه سوا حقيقي حاکم هيڅ څوک نشته او نه د هغه نه سوا بل ذات د عبادت لائق شته دې

| آياتونه | | سورة الشورى ومکية وهى ثلاث وخمسون اٰية وخمس رکوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | | |
| ۵۳ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | | ۷ |

حٰمٓ ﴿۱﴾ عٓسٓقٓ ﴿۲﴾ كَذٰلِكَ يُوۡحِىۡۤ اِلَيۡكَ وَاِلَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكَ ۙ

ح . م | ع . س . ق | همدارنګې | وحى کوى | تاته | او هغه رسولانو ته | چې مخکښې ستا نه وو

ح م ع س ق ، دغه شان تاته او ستا نه وړاندې پيغمبرانو ته هغه الله ﷻ چې غالب

اللّٰهُ الۡعَزِيۡزُ الۡحَكِيۡمُ ﴿۳﴾ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ

الله | چې غالب دې | چې دحکمت خاوند دې | هغه لره دى | هغه څه | چې په آسمانونو کښې دى |

دحکمتونو خاوند دې وحى کړې ده| په زمکه او آسمانونو کښې چه هرڅه دى ټول هرڅه د هغه

وَمَا فِى الۡاَرۡضِ ؕ وَهُوَ الۡعَلِىُّ الۡعَظِيۡمُ ﴿۴﴾ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ

او هغه څه | چې په زمکه کښې دى | او هغه | اوچت دې او لوئ دې | نزدې ده | چې آسمانونه

ملکيت دې| ........ ... او هغه ډير اوچت اوډير لوئې دې | نزدې ده چې آسمانونه پورته نه

يَتَفَطَّرۡنَ مِنۡ فَوۡقِهِنَّ وَالۡمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوۡنَ بِحَمۡدِ رَبِّهِمۡ

اوشليږى | دپاسه دهغوئ | او فرښتې | تسبيح وائى | دحمد درب خپل سره |

اوشليږى| او فرښتې دخپل رب تسبيح دحمد سره وائى

وَيَسْتَغْفِرُونَ | لِمَنْ | فِي الْأَرْضِ ط | أَلَآ | إِنَّ اللَّهَ

او ښنه غواړي | دپاره دهغه چا | چې په زمکه کښې دی | خبردار شه | بیشکه الله |

اوځوک (مومنان) چې په زمکه کښې دی د هغوی دپاره ښنه غواړي | یادساته چې الله ﷻ

هُوَ الْغَفُورُ | الرَّحِيمُ۝ | وَالَّذِينَ | اتَّخَذُوا | مِنْ دُونِهِ

خاص هم هغه ښونکي | مهربانه دي | او هغه کسان | چې نیولی دی هغوئ | بې دالله نه |

ښونکي او رحم کونکې دي | ..........اوچا چې دالله ﷻ نه سوا د ځان دپاره نور

أَوْلِيَآءَ | اللَّهُ | حَفِيظٌ | عَلَيْهِمْ | وَمَآ أَنْتَ | عَلَيْهِمْ

نور دوستان | الله | نظر ساتونکې دي | په هغوئ باندې | اوند نې ته | په هغوئ باندې |

کارسازان نیولی دي | .... الله ﷻ هغوئ وینی ګوری | ..........اوته د هغوئ ذمه وار

بِوَكِيلٍ۝

مقرر کړې شوې حوالدار |

نه یئ |

قوله تعالی:: حٰمٓ۝ عٓسٓقٓ۝

**دحروف مقطعات بحث او د (حٰمٓ۝ عٓسٓقٓ۝) متعلق عجیبه روایت:-** د حروف مقطعات بحث مخکښې تیر شوې دي.ابن جریردلته یو عجیبه اثر وارد کړې دې په هغې کښې دی چه یوکس ابن عباس له راغلو دغه وخت هغوی سره حضرت حذیفه بن یمان هم وو هغه ددې حروفو تفسیر د هغوی نه تپوس اوکړو هغوی لږ شان سر لاندې کړو بیا یې مخ واړو . دې کس په دویم ځل هم دغه سوال اوکړو هغوی ترې بیا مخ واړو او دهغه سوال یې بد اوګڼړلو .هغه بیا په دریم ځل تپوس اوکړو هغوی بیا هم څه جواب ورنکړو.دې باندې حضرت حذیفه اووئیل څه تا ته وایم او ما ته دا هم معلومه ده چه حضرت ابن عباس د دې باره کښې سوال کول ولې نا خوښوی ددوی په اهل بیت کښې یو کس باره کښې دا نازل شوی دی چه هغه ته به عبدالا له او عبدالله وئیلے شی .هغه به د نمر خاته نهرونو کښې یو نهر سره راکوزیږی اوهلته به دوه ښارونه ابادوی.نهر به کټ کړی او دوانړو ښارونو ته به یې بوزی.هرکله چه الله ﷻ ددوی ملك او ددوی دولت د ختمولو اراده اوکړی اود هغې وخت ختمیدو والا وی نو دوانړو ښارونو کښې به په یو ښار باندې به د شپې اور راشی چه هغه به اوسوزوی او ایره به یې کړی .د هغه ځاني خلق به یې چه صبااووینی نو حیران به شی داسې به معلومیږی چه دلته اډو څه وو نه سحر سحر به هلته سرکشه او متکبره خلق را جمع شی او هم دغه وخت به الله ﷻ دا ټول سره دهغه ښاره تباه او برباد کړی.همدا معنی ده د حم یعنی د الله د طرف نه دا فتنه فیصله شوې ده .دعین نه مراد عدل دې د سین نه مراد سیکون یعنی دا به ډیر زر کیږی د ق نه مراد واقع کیدل .دې دوانړو ښارونو کښې ددې نه هم زیات عجیبه یو بل روایت د مسند حافظ ابو یعلی په دویم جلد کښې مسند ابن عباس کښې دی چه مرفوع هم دې خو ددې سند بالکل ضعیف دې او منقطع هم دې په هغې کښې دی چه حضرت عمر بن خطاب ممبر باندې اوختو او د خلقو نه یې تپوس اوکړو چه تاسو کښې چا ددې حروف تفسیر د حضور ﷺ نه اوریدلې دې .حضرت ابن عباس زر اودریدو او وې فرمائیل او ما اوریدلې دې حم د الله ﷻ په نومونو کښې یو نوم دې د عین نه مراد عاین الی بدردې د سین نه مراد ﴿وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوٓا أَيَّ مُنْقَلَبٍ يَنْقَلِبُونَ﴾

دي د ق نه مراد څه مراد دي دا هغوی اونه ونيلې شو نو حضرت ابو ذر اودريدو او د حضرت ابن عباس د تفسير مطابق يې تفسير اوکړو او وې فرمائيل د ق نه مراد د اسمان قارعه ده چه ټول خلق به راګيروی.ترجمه دا شوه چه د بدر په ورځ تختيدونکو کافرانو د عذاب مزه اوڅکله دې ظالمانو ته به ډيرزرمعلوم شي چه ددوی به څومره خراب انجام وی ؟دوی باندې به اسمانی عذاب راشی چه دوی به تباه او برباد کړی .

بيا فرمائي چه اې نبي څنګه چه تاسو باندې ددې قرآن وحی نازل شوې ده دغه تاسو نه مخکښې نورو پيغمبرانو باندې کتابونه او صحيفې نازل شوې دی دا ټول دهغه الله ﷻ د طرف نه نازل شوې دی چه خپل انتقام اخستو کښې غالب او زبردست دې چه خپل افعالو او اقوالو کښې حکمت والا دې .

قوله تعالى:: كَذٰلِكَ يُوحِيٓ إِلَيۡكَ

**په نبی کريم صلی الله عليه وسلم باندې وحی کيفيت::** حارث بن هشام درسول اللهﷺ نه تپوس اوکړو چه تاسوباندې وحی څنګه نازليږی ؟رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل چه کله خو دجرس د مسلسل آواز په شان چه ما باندې ډير درون وی کله چه هغه ختم شی نو ما ته چه څه ونيلې شوې وی هغه ټول ياد شی اوکله فرښته د انسان په صورت کښې ما له راشی ماسره خبرې کوی اوهغه چه څه وائی څه هغه ياد اوساتم.حضرت صديقه رضي الله عنها فرمائی چه سخت د ژمی په ورځو کښې هم کله چه نبی ﷺ باندې به وحی راتلله نود وحی د سختئ دوجې به نبی ﷺ به اوبه اوبه شو تردې پورې چه د تندی نه به يې دخولو قطرې راڅڅيدلې(١) بخاری ومسلم)د مسند احمد په حديث کښې دی چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه دحضور ﷺ نه د وحی د کيفيت تپوس اوکړو نو نبی ﷺ اوفرمائيل د زنځير دآواز په شان يو آواز اورم بيا زه هغې ته غوږ کيږدم په دې وحی کښې ما باندې دومره سختی وی چه هر ځل ما ته د روح د وتلو ګمان وی(٢)

قوله تعالى:: لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ

**د الله تعالی د عظمت دشان بيان:** بيا فرمائی چه د زمکې اود اسمان ټول مخلوق دهغه غلام دی دهغه ملکيت دې دهغه د دباو د لاندې او دهغه وړاندې عاجزاومجبور دې هغه ډيراوچت او عظمت والا ذات دې هغه بلند او برتر دې د هغه د عظمت او د جلال دا حال دې چه نزدې ده چه اسمان اوشليږی فرښتې دهغه دعظمت نه ريږی اودهغه پاکې او حمد بيانوی او زمکې والو دپاره مغفرت غواړی لکه څنګه چه بل ځائې ارشاد دې ﴿ٱلَّذِينَ يَحۡمِلُونَ ٱلۡعَرۡشَ﴾ يعنی حاملان عرش او د عرش نزدې نورې فرشتې دخپل رب تسبيح او حمد بيانوی او په هغه باندې ايمان ساتی او ايمان والو دپاره استغفار کوی چه اې زمونږه ربه تا د خپل رحمت او علم سره د هر څيز احاطه کړې ده ته هغوی اوبخښې چا چه توبه ويستې ده او ستا د لارې تابع دی هغوی د دوزخ د عذاب نه هم اوساتې . بيا يې اوفرمائيل چه پوهه شې چه الله غفور او رحيم دې .بيا يې اوفرمائيل چه دمشرکانو د عملونو نګرانی څه پخپله کوم څه به پخپله هغوی له پورا پورا بدله ورکومه ستا کار هغوی صرف خبرول دی ته څه په هغوی باندې داروغه نه يې .

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَكَذَٰلِكَ | أَوۡحَيۡنَآ | إِلَيۡكَ | قُرۡءَانًا عَرَبِيًّا |
| او همدارنګې | وحی کړې دې مونږ | تاته | دا قرآن په عربئ ژبه کښې |
| اودغه شان مونږ تاته دا قران پاک په عربئ ژبه کښې نازل کړې دې | | | |

---

(١) صحيح مسلم كتاب بدء الوحى باب كيف بدء الوحى الى رسول الله ﷺ : ٢، صحيح مسلم : ٣٣٣٣، موطا: ٢٠٢/١.

(٢) احمد: ٢٢٢/٢،.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِّتُنذِرَ | أُمَّ الْقُرَىٰ | وَمَنْ | حَوْلَهَا | وَتُنذِرَ | |
| دپاره ددې چې اوېروې | مرکز دکلو (مکه) | او هغه څوك | چې چاپېره دهغې نه دي | او اوېروې خلق | |
| چې ته د کلو د اصل (مکې مکرمې) اوددې ګېرچاپېره خلق اوويروې ......................اود قيامت | | | | | |
| يَوْمَ الْجَمْعِ | لَا رَيْبَ | فِيهِ ۚ | فَرِيقٌ | فِي الْجَنَّةِ | وَفَرِيقٌ |
| د ورځ دجمع کيدونه | چې نشته شك | په هغې كښې | يوه ډله به | په جنت كښې وى | او بله ډله به |
| د ورځې نه ئې اوويروې چې دهغې په راتلو كښې هيڅ شک نشته يوډله به په جنت كښې او بله ډله به | | | | | |
| فِي السَّعِيرِ ⑦ | وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ | لَجَعَلَهُمْ | أُمَّةً وَاحِدَةً | وَلَٰكِن | |
| په دوزخ كښې وى | اوكه غوښتلې الله | نو جوړ کړې به ئې وې دوئ | ډله يوه | وليکن | |
| په دوزخ كښې وى اوكه الله ﷻ ته منظوره وې نو دوئ ټول به ئې (په زور) په يو لاره روان کړى وو | | | | | |
| يُدْخِلُ | مَن | يَشَاءُ | فِي رَحْمَتِهِ ۚ | وَالظَّالِمُونَ | |
| هغه دا خلوى | هغه څوك | چې غواړې ئې هغه | په رحمت خپل كښې | او ظالمان چې دي | |
| خوهغه چې د چا په حق كښې اوغواړي نو دخپل رحمت (دسيورى) لاندې ئې راولى اود ظالمانو | | | | | |
| مَا لَهُم | مِّن وَلِيٍّ | وَلَا نَصِيرٍ ⑧ | | | |
| نشته هغوئ لره | څوك دوست | اونه مددګار | | | |
| هيڅوک ملګرې اومددګار نشته | | | | | |

قوله‌تعالى: لِّتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ

**دمكې معظمې فضيلت او د قيامت اجتماع** :-يعنى څنګه چه اې نبى آخرالزمان تاسو نه مخكښې انبياء باندې وحې راتلله تاسو باندې هم دا قرآن د وحى په ذريعه نازل شوې دې دا په عربۍ ژبه كښې ډير واضحه بالكل كولاو ښه انداز بيان والا دې ددې د پاره چه ته دمكې اوسيدونكو ته دالله احكام اورسوې اود الله د عذابونو نه يې خبر كړې. نيز دې ټول اطراف عالم نه ګير چاپيره نه مراد د مشرق او مغرب هرسمت باندې مكې معظمې ته يې ام القرى ددې وجې ونيلې دى چه دا دټولو ښارونو نه افضل اوغوره ده ددې دلائل ډير زيات دى چه خپل خپل ځائې كښې مذكور دى .دلته يو دليل چه مختصر هم دې او صفا هم دې واورې ترمذى نسائى ابن ماجه مسند احمد وغيره كښې دى چه حضرت عبدالله بن عدى بن حمراء زهرى فرمائى چه ما پخپله د رسول الله ﷺ نه واوريدل هغوى د مكې مكرمې بازار خزوره كښې ولاړ وو او فرمائيل يې چه اې مكې قسم په الله ته د الله د ټولې زمكې نه د الله په نزد زيات محبوب او زيات افضل يې كه چرې زه ستا نه استلې شوې نه وې نو قسم د الله په ذات هيڅ چرې به مې نه وې پريښودې .( [1] )

امام ترمذى دې حديث ته حسن صحيح فرمائى او ددې د پاره چه ته د قيامت ده ورځې نه ټول اوېروې چه په كومه ورځ به ټول اولنى او آخرنى خلق يو ميدان كښې جمع كيږى د كومې ورځ په راتلو كښې چه هيڅ شك و شبه نشته .په دغه ورځ به څه خلق جنتيان وى او څه خلق به دوزخيان وى دا به هغه ورځ وى چه جنتيان به په ګټه كښې وى او دوزخيان په تاوان كښې .

[1] ) ترمذى كتاب المناقب باب فى فضل مكة : ۳۹۲۵، و هو صحيح ابن ماجه:۳۱۰۸، احمد: ۳۰۵/٤، ابن حبان: ۳۷۰۸.

په دويم آيت کښې فرمائيلې شوې دي ﴿ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُودٌ﴾ په دې واقعاتو کښې هغه کس د پاره ډير لوې عبرت دې چه د آخرت د عذاب نه يريږي .د آخرت هغه ورځ ده چه په هغې کښې به ټول خلق راجمع کيږي او هغه د ټولو د حاضرې ورځ ده مونږه هغه يو معلومې مودې پورې موخر کړې ده په دغه ورځ به څوك هم د الله ﷻ د اجازت نه بغير هيڅ خبره نشي کولې بيا به په دوی کښې بعضې بدقسمته وی او بعضې خوش قسمته .

مسند احمد کښې دی چه رسول الله ﷺ خپل صحابو له يو ځل دوه کتابونه په لاس کښې اخستې راوړل اوزمونږ نه يې تپوس اوکړو تاسو ته پته ده دا څه دی؟ مونږ عرض اوکړو مونږ ته خو پته نشته تاسو اوفرمائې.هغوی خپل ښی لاس والا کتاب طرف ته اشاره اوکړه او وې فرمائيل چه د اد رب العالمين کتاب دې چه په کښې د جنتيانو نومونه دی سره د هغوی دپلارانو او دهغوی د قبيلې او په آخره کښې حساب شوې دې او تعداد پوره شوې دې اوس به په دې کښې نه يو کس زيات شی او نه کم. بيا يې خپل ګس لاس کتاب طرف ته اشاره اوکړه او وې فرمائيل دا د دوزخيانو د نومونو رجستر دې د هغوی نومونه دهغوی ولديت او د هغوی قوم ټول په دې کښې ليکلې شوې دی بيا په آخره کښې ميزان لګولې شوې دې په دې کښې هم کمې بيشی نامکنه ده .صحابو تپوس اوکړو چه مونږ ته د عمل څه ضرورت دې ؟ځکه چه هر څه ليکلې شوی دی .نبی ﷺاوفرمائيل ټيك ټاك اوسې د خير کارونو سره نزدې اوسې د جنتيانو خاتمه به په نيکو او ښه حالاتو باندې وی که هغوی هر څنګه اعمال کوی او د دوزخيانو خاتمه به په جهنمی اعمالو باندې وی که هغوی دهر څنګه کارونو مرتکب وی.بيا هغوی خپل موټی بندکړلو او وې فرمائيل ستاسو رب د بندګانو د فيصلو نه فراغت حاصل کړې دې يوه فرقه په جنت کښې ده او بله په دوزخ کښې دې سره هغوی خپل ښی او ګس لاسونو طرف ته اشاره اوکړه لکه چه څه څيز غورزوی (۱).دا حديث په ترمذی او نسائی کښې دې.د حضرت امام ترمذی بقول دا حديث حسن صحيح غريب دې . دا حديث نورو کتابونو کښې هم دې .

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی الله ﷻ چه کله آدم ﷺ پيدا کړو نو هغه يې اوڅنډلو لکه څوك چې تيلی څنډی او دهغوی ټول اولاد يې د هغوی نه راوويستل او د ميږو په شان هغې خواره شو دوی يې خپل دواړو لاسونو کښې واخستو او وې فرمائيل چه يو حصه د نيکانو او بله د بدو خلقو .بيا يې هغه خواره کړل دوباره يې هغه راغونډ کړل او هغه شان يې خپل موټو کښې واخستل او وې فرمائيل چه يوه حصه جنتيان او بله دوزخيان .دا روايت هم موقوف صحيح دې. والله اعلم.

دمسند احمد په حديث کښې دی چه حضرت ابو عبد الله نومې يو صحابی بيمار شو مونږ د هغه تپوس له لاړو څه ګورو چه هغه ژاړی مونږ اووې تاسو ولې ژاړې ؟ تا ته خو نبی ﷺ فرمائيلی دی چه خپل بريت کم ساته تردې چه ما سره ملاو شې.په دې باندې صحابی اوفرمائيل دا خو ټيك ده ليکن ما خودا حديث ژړوی چه ما د نبی ﷺ نه اوريدلې دی چه الله ﷻ په خپل ښی موټی کښې مخلوق واخستل اودغه شان د دويم لاس موټی کښې هم او وې فرمائيل چه دا خلق ددې دپاره دی يعنی د جنت د پاره او دا خلق ددې د پاره يعنی د دوزخ د پاره او ما ته هيڅ پرواه نشته .

او ما ته ددې پته نشته چه څه د الله په کوم موټی کښې وم (۲).دغه شان د تقدير د اثبات نور هم ډير حديثونه دی .

۱) ترمذی کتاب القدر باب ما جاء ان الله کتب کتابا لاهل الجنة واهل النار: ۲۱۴۱، وسنده حسن السنن الکبری :۱۱۴۷۳. احمد: ۱۶۷/۲.

۲) احمد:۶۸/۵ ، کشف الاستار :۲۱۴۲.

قوله تعالى: وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَهُمْ اُمَّةً وَّاحِدَةً

بيافرماني كه الله ﷻ ته منظور وې نو ټول به يې په يو طريقه كړي وې يعنې ياخو په هدايت باندې او يا په ګمراهۍ باندې خو الله ﷻ په دوى كښې فرق اوساتلو بعضو ته يې د حق لاره اوښودله اوبعضو نه يې دا هيره كړله.په خپل حكمت هم هغه پوهيږي هغه چه چاته اوغواړي د خپل رحمت لاندې ي اودروى د ظالمانو حمايتي او مدد ګار هيڅ څوك نشته دې .په ابن جرير كښې دي چه الله ﷻ ته حضرت موسى عليه السلام عرض اوكړو چه اې زما ربه تا خپل مخلوق پيدا كړلو بيا به ته په دې كښې څه جنت ته ليږې او څه دوزخ ته څنګه شه به وه چه ټول جنتيان وې . الله رب العزت ورته اوفرمائيل اې موسى خپلې كپړې اوچتې كړه هغه اوچتې كړې بيا يې اوفرمائيل نورې اوچتې كړه هغه نورې اوچتې كړې وې فرمائيل نورې يې اوچتې كړه جواب يې وركړو چه اې الله اوس خو مې د ټول بدن نه اوچت كړلې سواد هغه ځاې نه چه د هغې نه بره په اوچتولو كښې خير نشته. وې فرمائيل هم دغه شان څه به هم ټول مخلوق په جنت كښې داخلوم سوا د هغوى نه چه بالكل د خير نه خالي وى .

اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ

| ايا نيولي دي دوئ | بې د الله نه | نور دوستان

|ايا دوئ د ځان دپاره د الله ﷻ نه سوا نور كارسازان نيولي دي|

فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِيُّ وَهُوَ يُحْيِ الْمَوْتٰى وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

پس الله چې دې | هم هغه ولي دې | او هغه ژوندي كوى | مړي | او هغه | په هر څيز باندې |

نو دهرچا كارساز (الله ﷻ) دې | او هغه مړي ژوندي كوى | او هغه په هر څيز قادر دې |

قَدِيْرٌ ۝ وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهٗٓ

قادر دې | او هغه | چه اختلاف كوئ تاسو | په هغې كښې | د څه څيز نه | نو فيصله د هغې |

......... | اوتاسو چې په كومه خبره كښې اختلاف كوئ | نو د هغې فيصله صرف الله ﷻ

اِلَى اللّٰهِ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبِّيْ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖ وَاِلَيْهِ

(حواله ده) الله ته | دغه الله | رب زما دې | په هغه باندې | بروسه اوكړه ما | او خاص هغه ته

ته حواله ده | اوهم دغه زما رب دې | زه په دهٔ توكل كوم |اوهم دهٔ ته رجوع كوم

اُنِيْبُ ۝ فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ جَعَلَ لَكُمْ

رجوع كوم زهٔ | پيدا كونكي دې د اسمانونو | او د زمكې | جوړې ني كړې | ستاسو دپاره |

.........داسمانونو اودزمكې پيداكونكې دې | هغه تاسو دپاره ستاسو د خپل جنس نه

مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّمِنَ الْاَنْعَامِ اَزْوَاجًا ۚ يَذْرَؤُكُمْ

دنفسونو ستاسو نه | جوړې | او د څاروو نه | جوړې | زياتوى (خوروى) تاسو

جوړې پيداكړې دى |اودغه شان په څاروۆ كښې ئې جوړې پيداكړى دى| چې ددې په ذريعه

فِيْهِ ؕ لَيْسَ كَمِثْلِهٖ شَيْءٌ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ۝

په دې طريقې سره | نشته | په مثل د هغه | هيڅ څيز | او هغه هر څه اوريدونكې | ليدونكي دې |

ستاسو نسل خوروى | د دهٔ په شان هيڅوك نشته | او دې هرڅه اورى هرڅه وينى ګورى

لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ
هغه لره دي | کنجیاني | دخزانو داسمانونو | او دزمکې | فراښه کوی رزق | دپاره دهغه چا
د اسمانونو اود زمکې چابیانې دهغه په اختیار کښې دی | هم هغه چې د چا رزق اوغواړی فراخ ئې
يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ⑫
چه غواړی هغه | او په اندازه کوی رزق | بیشکه هغه | په هر څیز باندې | عالم دې |
کړی |اودچا رزق تنګوی | ..................... اوبیشکه هغه په هرڅه ښه پوهه دې |

قوله تعالى: فَاللّٰهُ هُوَ الْوَلِیُّ

**خالق او معبود هم هغه دې :** الله ﷻ دمشرکانو ددې مشرکانه فعل خرابې بیانوی چه هغوی به الله ﷻ سره شرك کولو او د نورو عبادت به یې کولو او بیان فرمائی چه ریښتونې مددګاراوکارونه جوړولو والا خو څه یم.مړی ژوندی کول زما صفت دې هر څیز باندې قابو او قدرت لړل زما وصف دې بیا زما نه سوا د بل چا عبادت څنګه ؟ بیافرمائی چه په کومه معامله کښې په تاسو کښې څه اختلاف پیدا شی دهغې فیصله الله طرف ته اوړې.یعنی د ټولو دینی اودنیاوی اختلافاتو د فیصلې د الله کتاب اودرسول الله ﷺ سنت اومنې.څنګه چه فرمان عالی شان دې ﴿فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِیْ شَیْءٍ فَرُدُّوْهُ اِلَی اللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ﴾ که چرې په تاسو کښې څه جګړه وی نوهغه الله ته او د هغه رسول ﷺ ته ګرځوې . بیا فرمائی چه هغه الله په هر څیز حاکم دې هم هغه زما رب دې زما توکل هم په هغه دې او زه خپل ټول کارونه هم هغه ته سپارم او هر وخت هم هغه ته رجوع کوم .

هغه اسمان او زمکه او څه چه دد ې په مینځ کښې دی دټول مخلوق خالق دې.دهغه احسان ته اوګوره چه هغه هم ستاسو دجنس اوهم ستاسو په شکل کښې ستاسو جوړې یې جوړې کړې یعنی سړی او ښځې او د څناورو یې هم جوړې پیدا کړې چه اته دی .هغه هم په دې پیدایش تاسو پیدا کوی یعنی هم په دې صفت باندې یعنی جوړه جوړه یې پیدا کړلې او ستاسو نسلونه یې خواره کړل.ډیره زمانه تیره شوه او هم دا سلسله راروانه ده یو خوا د انسانانو اوبل خوا د څناورو .بغوی فرمائی مراد په رحم کښې پیداکول دی او بعض فرمائی چه په خیټه کښې .بعض فرمائی هم په دې طریقه باندې خوروی. حضرت مجاهد فرمائی نسلونه خورول مراد دی .

بعض فرمائی دلته د فیه په معنی د به ده یعنی د نراود ښځې دجوړې نه هغه نسل انسانی خوروی او پیدا کوی.حق دا ده چه دخالق په شان بل څوك نشته.هغه یواځې اوصمد دې هغه بې مثاله دې.هغه سمیع اوبصیر دې.د اسمانونو اود زمکو کنجیانې دهغه په لاس کښې دی.سورة زمر کښې ددې تفسیر تیر شوې دې.مقصد دا دې چه د ټول عالم متصرف مالك حاکم هغه یواځې دی هیڅ څوك ورسره شریك نشته .چا ته چه اوغواړی ډیر رزق ورکوی او چا باندې تنګی راولی دهغه یو کارهم د حکمت نه خالی نه دې .هیڅ حالت کښې هم هغه په چا ظلم کولو والا نه دې .د هغه وسیع علم ټول مخلوق په احاطه کښې اخستې دې .

شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّیْنِ مَا وَصّٰی بِهٖ نُوْحًا
مقرر کړی ده ستاسو دپاره | ددین نه | هغه طریقه | چه وصیت کړې وو | په هغې سره | نوح علیه السلام |
او الله تعالی ستاسو دپاره هغه دین مقرر کړې دې | د کوم چې ئې نوح علیه السلام ته کړې وو

وَالَّذِیٓ اَوۡحَیۡنَآ اِلَیۡكَ وَمَا وَصَّیۡنَا

او هغه طریقه | چې وحی کړې ده مونږه | تاته |او هغه طریقه | چه هدایت کړې وو مونږه |

او دکوم حکم چې مونږ تاته کړې دې | او دکوم حکم چې مونږ

بِهٖٓ اِبۡرٰهِیۡمَ وَمُوۡسٰی وَعِیۡسٰٓی اَنۡ اَقِیۡمُوا الدِّیۡنَ

په هغې سره | ابراهیم علیه السلام ته | او موسی علیه السلام | او عیسی علیه السلام ته | چه قائم کړئ | دا دین |

ابراهیم ﷺ ته او موسی ﷺ او عیسی ﷺ ته کړې وو (هغه دادې) چې تاسو په دین باندې قائم اوسیږئ

وَلَا تَتَفَرَّقُوۡا فِیۡهِ ؕ کَبُرَ عَلَی الۡمُشۡرِکِیۡنَ مَا

او ډلې ډلې کیږئ مه | په هغې کښې | ډېر ګران دې | په مشرکانو باندې | هغه څیز |

او اختلاف په کښې مه کوئ | مشرکانو ته دا خبره ډېره ګرانه ښکاری اکومې ته چې ته

تَدۡعُوۡهُمۡ اِلَیۡهِ ؕ اَللّٰهُ یَجۡتَبِیۡۤ اِلَیۡهِ مَنۡ یَّشَآءُ

چه ته رابلې هغوئ | هغې ته | الله راکاږی (غوره کوی) | خان خپل ته | هغه څوك | چې غواړی هغه

هغوئ رابلې | الله ﷻ د خپل خان دپاره دهغه چا انتخاب کوی چې خوښ ئې شی |

وَیَهۡدِیۡۤ اِلَیۡهِ مَنۡ یُّنِیۡبُ ﴿۱۳﴾ وَمَا تَفَرَّقُوۡۤا

او لار ښائی | طرف دخان خپل ته | هغه چاته | چې رجوع کوی (الله ته) | او نه دی مختلف شوی خلق

او خپل طرفته هغه چا ته هدایت کوی څوك چې (الله تعالی ته) رجوع کوی |

اِلَّا مِنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَهُمُ الۡعِلۡمُ بَغۡیًۢا بَیۡنَهُمۡ ؕ

مګر | روستو دهغې نه | چه راغلو هغوئ ته | علم | دوجې دزیاتی کولو نه | په منځ خپل کښې

خلقو د علم راتلو نه وروستو په خپل مینځ کښې صرف د بغض په وجه اختلاف کړې دې |

وَلَوۡلَا کَلِمَةٌ سَبَقَتۡ مِنۡ رَّبِّكَ اِلٰۤی اَجَلٍ مُّسَمًّی

او که چرې نه وې خبره | هغه چې مخکښې شوې ده | د طرفه درب ستا نه | د نیټې مقررې پورې

او که ستا د رب د طرفه (دمهلت) یوه خبره ترمقررې نیټې پورې فیصله شوې نه وې |

لَّقُضِیَ بَیۡنَهُمۡ ؕ وَاِنَّ الَّذِیۡنَ اُوۡرِثُوا

نو خامخا فیصله به شوې وه | په منځ ددوئ کښې |او بیشکه هغه کسان|چه په میراث کښې ورکړې شو ورته

نو ددوئ په مینځ کښې به فیصله شوې وه | او چاته چې ددغې امتونو نه

الۡکِتٰبَ مِنۡۢ بَعۡدِهِمۡ لَفِیۡ شَكٍّ مِّنۡهُ مُرِیۡبٍ ﴿۱۴﴾

کتاب | روستو دهغوئ نه | خامخا په شك کښې دی | ددغه کتاب نه|په شك پریشانه کښې

پس کتاب ورکړې شوې دې | نو هغوئ ددغې کتاب په حق کښې په شك کښې پریشانه دی

قوله تعالى: شَرَعَ لَكُم مِّنَ الدِّينِ

د ټولونبيانوعليهم السلام مشترکه دتوحيد دعوت الله ﷻ چه کوم انعام په دې امت باندې کړې دې د هغې ذکردلته فرمائی چه تاسو دپاره چه کوم شريعت مقرر کړې دې هغه هغه دې چه ددنيا دټولونه اولنې پيغمبردحضرت آدم ؈ اوددنيا د ټولو نه آخرى پيغمبردحضرت محمد او ددوى په مينځ کښې د اوچتواوچتو پيغمبرانو وو.

پس دلته چه د کوم پنځو پيغمبرانو ذکرشوې دې ددغې پنځو ذکر په سوره احزاب کښې هم شوې دې ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ﴾هغه دين چه دټولوانبياءو په مشترکه دې هغه دې يو الله عبادت دې څنګه چه د الله رب العزت فرمان دې ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِي إِلَيْهِ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدُونِ﴾يعنى ستاسو نه مخکښې چه څومره هم پيغمبران راغلې دى هغې ټولو ته مونږه هم داوحى کړې ده چه معبود زما نه سوابل نشته .پس تاسو ټول هم زما عبادت کوئ .حديث کښې دى چه انبياء عليهم السلام خپلو کښې د علاتى رونړو په شان دى .زمونږ د ټولو دين هم يو دې څنګه چه د علاتى رونړو پلار يو وى([1])

د ټولو انبياء گرامو عقيده يوه او شريعت جدا جدا وو: غرض دشريعت په احکامونو کښې اګر چه جزوى اختلاف وى خويه اصولى طور دين هم يو دې اوهغه توحيد بارى تعالى عز اسمه دې.فرمان الهى دې ﴿لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا﴾تاسو کښې هر يو د پاره مونږ شريعت جوړ کړې دې .دلته ددې وحى تفصيل داسې بيانيږى چه دين قائم ساتې په يو جماعت کښې په اتفاق سره اوسې اختلاف مه کوئ . بيافرمائى هم دا توحيد آوازونه په مشرکانو گران پريوزى .حق خبره دا ده چه هدايت دالله ﷻ په لاس کښې دې څوك چه د هدايت مستحق وى هغه رب طرف ته رجوع کوى او الله د هغه لاس نيسى او د هدايت په لاره يې اودروى .او څوك چه پخپله خرابه لار اختيار کړى او صفا لاره پريږدى الله ﷻ هم د هغه په تندى باندې ضلالت اوليکى .کله چه دې له حق راغلو په دوى باندې حجت قائم شو .دا وخت ددې په خپلو کښې دضدد وجې اختلاف پيدا شو.که د قيامت ورځ دحساب کتاب د پاره مقرر شوې نه وو نو ددې دهر بدعمل سزا به دې ته په دې وخت ملاويده .بيا فرمائى چه دا مخکنى چه د ړومبو نه يې کتابونه موندې دى داصرف د تقليد په طور منى.او ظاهر ده چه دمقلد ايمان د شك اوشبې نه خالى نه وى هغوى ته پخپله يقين نشته د دليل او حجت په بنياد ددوى ايمان نه دې بلکه د ړومبو خلقو چه حق منلو والا نه وو د هغې مقلد دى .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَلِذَٰلِكَ | فَادْعُ | وَاسْتَقِمْ | كَمَا | أُمِرْتَ |
| پس هم دغه دين ته | راوبله خلق | او محکم اودريږه | لکه څنګه چې | حکم شوي دي تاته |
| نو ته دوئ هم دي (حق دين) طرفته رابله | | اولکه څنګه چې درته حکم شوي دي دهغه (په سمه لار) قائم | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تَتَّبِعْ | أَهْوَاءَهُمْ | وَقُلْ | آمَنتُ | بِمَا | أَنزَلَ اللَّهُ |
| اومه کوه ته پيروى | دخواهشاتو دهغوئ | اواووايه | ايمان راوړي دي | ما په هغه | چې نازل کړي دي الله |
| اوسيږئ | اود دوئ د خواهشاتو تابعدارى مکوه | اواووايه | چې الله ﷻ څومره کتابونه نازل کړي دى | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِن كِتَابٍ | وَأُمِرْتُ | لِأَعْدِلَ | بَيْنَكُمُ | اللَّهُ رَبُّنَا |
| دکتاب نه | او حکم شوي دي ماته | چې زۀ انصاف اوکړم | په منځ ستاسو کښې | الله رب زمونږ دي |
| ما په هغې ايمان راوړي دي | اوماته حکم شوي دي چې ستاسو ترمينځه (هميشه) انصاف کوم | | | الله ﷻ |

[1] ) صحيح بخارى كتاب احاديث الانبياء باب قول الله تعالى (( واذكر فى الكتاب مريم.....)) : ۳۴۴۳، صحيح مسلم: ۲۳۶۵.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَرَبُّكُمْ ط | لَنَآ أَعْمَالُنَا | وَلَكُمْ | أَعْمَالُكُمْ ط | لَا حُجَّةَ |
| او رب ستاسو دي | مونږ لره عملونه زمونږ دي | او تاسو لره | عملونه ستاسو دی | نشته هيڅ جګړه |
| زمونږاوستاسو دټولو رب دي\|\|وزمونږ دپاره زمونږ عملونه اوستاسو دپاره ستاسوعملونه دی | | | | |
| بَيْنَنَا | وَبَيْنَكُمْ ط | اَللّٰهُ يَجْمَعُ | بَيْنَنَا ج | وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ ﴿۱۵﴾ |
| په منځ زمونږ\|\|اوپه منځ ستاسوکښې \|\|الله به راجمع کوی\|مونږټولولره\|\|اوخاص هغه ته واپس ورتلل دی | | | | |
| زمونږ اوستاسو په مينځ کښې هيڅ جګړه نشته \|\|الله ﷻ به مونږ ټول جمع کړی\|\|اوهم دهغه طرفته واپس تلل دی | | | | |

قوله تعالى: فَلِذٰلِكَ فَادْعُ

لس مستقل کلمې. په دې آيت کښې يو نکته ده چه د قرآن کريم صرف يو بل آيت کښې موندې شی باقی په بل آيت کښې نشته هغه دا چه په دې کښې لس کلمې دی چه هغه ټولې مستقل دی بيله بيله يو يوکلمه په خپل ذات کښې يو مستقل حکم دې هم دا خبره په بل آيت يعنی په آيت الکرسی کښې هم ده.پس ① (فَادْعُ)رومبې خو دا دې چه کومه وحی په تاسو نازليږی هم دا وحی تاسو نه مخکښې ټولو انبياء باندې به راتلله او کوم شريعت چه ستا د پاره مقررشوې دې هم هغه ستا نه مخکښې انبياء کرام دپاره هم مقرر شوې وو.نو ټولو خلقو ته ددې دعوت ورکړه هر يو هم دې طرف ته رابله او د دې اومنلو اوخورولو په کوشش کښې لګيا اوسه .

② (اَسْتَقِمْ)اود لله ﷻ په عبادت او وحدانيت پخپله هم استقامت کوه او خپل منونکو باندې هم پرې استقامت کوه.

③ (وَلَاتَتَّبِعْ)مشرکين چه کوم اختلاف کوی اوکوم تکذيب اوافترا چه کوی دا ددنی عادت دې اودغير الله ﷻ عبادت ددوی عادت دې خبردار تـه هرګز هرګز ددوی په خواهشاتو کښې مه راځه ددوی يوه خبره هم مه منه .

④ (وَقُلْ اٰمَنْتُ)او علی الاعلان د خپلې دې عقيدې تبليغ کوه چه د الله نازل کړی په ټولو کتابونو باندې زما يقين دې.زما دا کار نه دې چه يو اومنم او د نورو نه انکار اوکړم چه يو واخلم او نور پريږدم.

⑤ (وَاُمِرْتُ) زه په تاسوکښې هم هغه احکامات جاری کول غواړم کوم چه دالله طرف نه ما تـه رارسيدلې دی اوکوم چه سراسر په انصاف باندې مبنی دی .

⑥ (اَللّٰهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ط)معبود برحق صرف الله ﷻ دې. زمونږ او ستاسو معبود هم هغه دې اوهم هغه د ټولو پروردګاردې اګرچه څوك په خپله خوشالې هغه ته ټيټ نه شی خو په اصل کښې هر کس بلکه هر څيز هغه ته ټيټ شوی دی او په سجده کښې پروت دې .

⑦ (لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ط)زما عمل زمونږ سره اوستاسو عمل تاسو سره .مونږ ه اوتاسو کښې هيڅ تعلق نشته.څنګه چه يو بل آيت کښې الله رب العزت فرمائيلې دی که تا دروغژن ګنړی نو تـه ورتـه اووايه زما دپاره زما اعمال دی اوستاسو د پاره ستاسو اعمال دی.تاسو زما د اعمال نه بری او زه ستاسو د اعمال نه بری يم او زه ستاسو اعمال نه بيزاره يم.

⑧ (لَاحُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ط)مونږه او تاسو کښې هيڅ خصومت اوجګړه نشته دځه بحث اومباحثې ضرورت نشته.حضرت سدی فرمائی دا حکم خو په مکه کښې وو خوپه مدينه کښې د جهاد احکام نازل شو ممکنه ده چه داسې وی څکه چه دا آيت مکی دې او د جهاد آيتونه د هجرت نه پس دی .

⑨ (اَللّٰهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا) د قيامت په ورځ به الله رب العزت مونږه ټول راجمع كوي ځنګه چه بل آيت كښي دي قل ربنا يعنى ته اووايه چه مونږ به زمونږه رب جمع كوي بيا به په مونږ حق سره فيصله كوي او هم هغه فيصله كولو والا او علم والا دې .

⑩ (وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ) بيا فرمانى هم الله طرف ته واپس تلل دى .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالَّذِيْنَ | يُحَآجُّوْنَ | فِي اللّٰهِ | مِنْۢ بَعْدِ | مَا اسْتُجِيْبَ | |
| او هغه خلق | چې جګړې كوي | په دين دالله كښى | روستو دهغې نه | چې قبولوالې شوې دې | |
| او هغه خلق چې د الله ﷻ په باره كښې جګړه كوي ددې نه پس چې هغه منلې شوې دې | | | | | |
| لَهٗ | حُجَّتُهُمْ | دَاحِضَةٌ | عِنْدَ رَبِّهِمْ | وَعَلَيْهِمْ | غَضَبٌ |
| هغه لره | دليل دهغوئ | باطل دې | په نز درب دهغوئ | او په هغوئ باندې | غضب دې |
| دهغوئ دليل درب په نيز باطل دې .........او په هغوى باندې غضب دې | | | | | |
| وَلَهُمْ | عَذَابٌ شَدِيْدٌ ⑯ | اَللّٰهُ الَّذِيْٓ | اَنْزَلَ الْكِتٰبَ | بِالْحَقِّ | |
| او هغوئ لره دې | عذاب سخت | الله هغه ذات دې | چې نازل ئې كړو كتاب | دحق سره | |
| اودهغوى دپاره سخت عذاب مقرر دې الله ﷻ هغه ذات دې چې كتاب او (دانصاف) تله ئې په حقه نازل | | | | | |
| وَالْمِيْزَانَ ط | وَمَا يُدْرِيْكَ | لَعَلَّ السَّاعَةَ | قَرِيْبٌ ⑰ | يَسْتَعْجِلُ | |
| او ميزان (تله ) هم | او څه پته ده تاته | كيدې شي چې قيامت | نزدې وى | تلوار كوي | |
| كړې ده اوتاته څۀ معلومه ده كيدې شي قيامت نزدې وى ...........كوم خلق چې په دې | | | | | |
| بِهَا | الَّذِيْنَ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | بِهَا ج | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا |
| په راتلودهغې | هغه كسان | چې هغوئ ايمان نه لرى | په هغې | اوهغه كسان | چې ايمان يې راوړې دې |
| ايمان نه راوړې هغې ته تلواركوى ..................اوڅوک چې ايمان دار دى نو هغوئ ترې نه | | | | | |
| مُشْفِقُوْنَ | مِنْهَا لا | وَيَعْلَمُوْنَ | اَنَّهَا الْحَقُّ ط | اَلَآ | اِنَّ الَّذِيْنَ |
| بريدونكى دى | دهغې نه | او پوهيږى | چې بيشكه هغه حق دې | ښۀ واورئ | بيشكه هغه كسان |
| ويره كوى او دا عقيده ساتى چې قيامت حق دې ..................ياد ساته ، چې څوک د قيامت | | | | | |
| يُمَارُوْنَ | فِي السَّاعَةِ | لَفِيْ ضَلٰلٍۢ بَعِيْدٍ ⑱ | | | |
| چې دشك بحثونه كوى | په راتلو دقيامت كښى | خامخا هغوئ په ګمراهي لرې كښى دى | | | |
| په حق كښې جګړې كوى هغوئ په ډيره غټه ګمراهئ كښې پراته دى | | | | | |

**قوله تعالى: وَالَّذِيْنَ يُحَآجُّوْنَ فِي اللّٰهِ**

**بيان د بطلان د دليل دمنكرينو :** الله ﷻ هغه خلق يروى چه ايمان والوسره فضول بحثونه كوى هغوى د نيغې لارې نه اړول غواړى اود الله په دين كښې جګړې راوباسى دهغوى دليل باطل دې هغوى باندې الله ﷻ ډير زيات غصه دې اوهغوى ته به د قيامت په ورځ سخت ناقابل برداشت سزا وركولې شى د هغوى طمع پوره كيدل يعنى په مسلمانانو كښې بيادجاهليت عادتونه راوستل محال دى تېك دغه شان ديهوديانو اونصارو جادو به هم نه چليږى .ممكنه ده دوى موجوده دين ته خپل رشتونى او اصلى

دين باندې ترجيح ورکړی اوهغه دين واخلی چه په هغې کښې دروغ ملاو شوی دی اوتحريف پکښې شوې دې او بدل شوې دې .

بيا فرمائی چه الله رب العزت حق سره کتاب نازل کړې دې او عدل او انصاف يې راليږلې دې.لکه څنګه د الله فرمان دې ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ﴾ يعنی مونږه رسولان ظاهر دليلونو سره راوليږلو او هغوی سره مو کتاب اوميزان راوليږل چه خلق په انصاف باندې قائم شی.يو بل آيت کښې دی ﴿وَالسَّمَاءَ رَفَعَهَا﴾ يعنی اسمان هم هغه اوچت کړې دې او تله هم هغه ايخودې ده چه تاسو په تلو کښې کمې زياتې اونکړې او انصاف سره وزن ټيک ساتې او تول مه کموې . بيا فرمائی تا ته پته نشته چه قيامت ډير نزدې دې .په دې يره او لالچ دوانړه دی او په دې کښې دنيا نه بې رغبته کول هم مقصود دی .

قوله تعالى:: يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا"

**کافران د قيامت نه نه يريږی:** بيا يې اوفرمائيل چه ددې انکار کونکی خو تادی کوی چه قيامت ولې نه راځی؟هغوئ وائی که تاسو په حقه يې نو قيامت قائم کړې ځکه چه د هغوئ په نزد د قيامت راتلل محال دی خو ددې برخلاف ايمان والا ددې نه يريږی ځکه چه ددوی عقيده ده چه د قيامت راتلل ضروری او يقينی دی د دې نه يريږی او هغه اعمال کوی چه په هغه ورځ ددوی په کار راشی .يو صحيح حديث کښې دی چه تقريبا د تواتر درجې ته رسيدلې دې چه يو کس په اوچت آواز د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه يا رسول الله قيامت به کله وی ؟داواقعه د سفر ده هغه دنبی ﷺ نه لږ لرې وو . نبی ﷺ ورته اوفرمائيل او او هغه يقينا راتلو والا دې ته اووايه چه تا ددې دپاره څه تياری کړې ده ؟ هغه عرض اوکړو د الله او دهغه د رسول محبت .ته به هغوی سره يې چا سره چه ستا محبت دې([1]).يو بل حديث کښې د نبی ﷺ فرمان دې هر يو کس به هغه سره وی چا سره چه د هغه محبت وی ([2]). دا حديث يقينا متواتر دې .غرض حضور ﷺ ددې سوال په جواب کښې د قيامت د وخت تعيين اونکړو بلکه سائل ته يې ددغې ورځې د تيارې اوفرمائيل .پس د قيامت د راتللو د وخت علم د الله نه سوا بل چا ته نشته دې . بيا فرمائی چه د قيامت په راتلو کښې چه کوم خلق جګړې کوی هغه ددې منکر دی دا محال ګڼړی هغه خالص جاهلان دی .صحيح عقل اوپوهه نه ډير لرې پراته دی.د نيغې لارې نه ورك شوی دی او ډير لرې غورزيدلې دی .تعجب دې د زمکې او د اسمانونو ابتدائی خالق الله ﷻ منی او د انسان د مرګ نه پس دوباره ژوندی کولو باندې هغه قادر نه ګڼړی چا چه بغير د څه نمونې ابتداء هغه پيدا کړلو نو دوباره چه دده اجزاء هم څه نه څه موجود دی دې پيدا کول هغه باندې څه ګران دی بلکه عقل سليم هم داتسليموی چه دا خو نور هم آسان دې .

| اللهُ لَطِيفٌ | بِعِبَادِهِ | يَرْزُقُ | مَنْ | يَشَاءُ | وَهُوَ الْقَوِيُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| الله مهربانه دي | په بندګانو خپلو | اروزي ورکوي | هغه چاته | چي څه ورکول غواړي | اوهغه طاقتور دي |
| الله ﷻ په خپلو بندګانو مهربان دې | چې چاته اوغواړی نو فراخه رزق ورکوی | اوهغه قوی دې | | | |
| الْعَزِيزُ ۝ | مَنْ | كَانَ | يُرِيدُ | حَرْثَ الْآخِرَةِ | نَزِدْ |
| او غالب دي | هغه څوک | چي وي | چي غواړي | فصل داخرت | زيات والي کوؤ مونږه |
| او زبردست دې | څوک چې د اخرت فصلونه غواړی | ......مونږ به ورته | | | |

[1] صحيح بخاری كتاب الادب باب علامة الحب فى الله ٦١٧١، صحيح مسلم:٢٦٣٩. ترمذی : ٣٥٣٦ مسند الطيالسی: ١١٦٧.

[2] صحيح بخاری حواله سابق ، : ٦١٧٠، صحيح مسلم كتاب البر والصلة باب المرء مع من احب : ٢٦٤١.

لَهٗ فِيْ حَرْثِهٖ ۚ وَمَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ

هغه لره | په فصل د هغه کښې || او هغه څوک چې وي | اچې غواړي | فصل د دنيا | ورکوؤ مونږ هغه ته

د آخرت فصلونه ډيرور کړو | او څوک چې د دنيا فصلونه غواړي انو مونږ به ورته څه قدري

مِنْهَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ نَّصِيْبٍ ۝ اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا

د هغې نه | او نشته هغه لره | په آخرت کښې | هيڅ حصه | يا دوئ لره دي | داسې شريکان

ګټه ورکړو | او داسې سړی د پاره په آخرت کښې هيڅ حصه نشته || ايا د دوئ شريکان دي

شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَاْذَنْۢ

چې مقرر کړي ني ده يوه طريقه | د پاره د دوئ | د دين نه | هغه | چې اجازت نه دي ورکړې

چې داسې دين ني ورته جوړ کړي دي د کوم چې الله ﷻ اجازت نه دي ورکړې

بِهِ اللّٰهُ ۗ وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۗ

په هغې سره | الله || او که چرې نه وې خبره د فيصلې انو خامخا فيصله به شوې وه | په منځ د دوئ کښې

او که (د مهلت) فيصله نه وی شوې انو د دوئ په مينځ کښې به خبره خلاصه شوې وه (او هلاک شوې به وې)

وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ تَرَى الظّٰلِمِيْنَ

او بيشکه ظالمان چې دي | مقرر دي هغوئ لره | عذاب دردناک | ته به اووينې | دا ظالمان خلق

او ظالمانو د پاره دردناک عذاب مقرر دي | ته به دا ظالمان اووينې | چې د خپلو عملونو د انجام نه به

مُشْفِقِيْنَ مِمَّا كَسَبُوْا وَهُوَ وَاقِعٌۢ بِهِمْ ۗ

يريدونکي | د هغې عمل نه | چې کړي وي دوئ | او هغه به واقع کيدونکې وي | په دوئ باندې

(پخپله) او ويريږي | حال دا چې هغه عذاب به پرې واقع شی |

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ ۚ

او هغه کسان | چې ايمان ني راوړو | او عملونه ني اوکړل نيک | وی به په باغيچو | د جنت کښې

او کوم کسانو چې ايمان راوړې دی || نيک عملونه کوی | هغوئ به د جنتونو په باغيچو کښې اوسيږي

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۗ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ

وی به هغوئ لره | هغه | چې غواړي ني هغوئ | په نز د رب د هغوئ | دا هم هغه | فضل

د دوی د پاره به د خپل رب سره هر هغه څه وی کوم چې دوی غواړي | هم دغه لوئې فضل دې

الْكَبِيْرُ ۝

لوئ دې |

قوله تعالى: مَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الْاٰخِرَةِ

**د آخرت طالب او د دنيا طالب:** الله ﷻ خبر ورکوی چه هغه خپل بندګانو باندې ډير مهربانه دي. يو ته د بل په ذريعه روزي وررسوی څوک هم نشته چه الله يې هير کړی نيک او بد هر يو د هغه روزي خوری لکه

ځنګه يې چه اوفرمائيل ﴿وَمَا مِن دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا﴾ په زمکه باندې ګرزيدونکی د ټولو ځناورو د رزق ذمه دارالله ﷻ دې.هغه دهر ځاے اوسيدو ځائې ډيرښه پيژني او ټول څه په لوح محفوظ کښې ليکلي شوې هم دی هغه چه چا له اوغواړي زيات رزق ورکوی هغه طاقتوراوغالب دې چه هغه څوك هم مغلوبو لې نه شی .

بيا فرمائي څوك چه د آخرت اعمالو ته توجه کوی مونږ پخپله د هغه مددکوو هغه ته طاقت او قوت ورکوؤدهغه نيکي زياتو بعضې نيکې لس چند ه بعضې اووه سوه چنده او بعضې ددې نه هم زياتو . غرض د آخرت آرزو چه په کوم زړه کښې وی هغه کس ته د نيکې توفيق د الله ﷻ دطرف نه عطا کيږي اوچه دچا ټول کوشش ددنيا دحاصلولو د پاره وی آخرت طرف ته دده توجه نه وی نو هغه د دوانړو جهانونو نه محرومه وی.د دنيا ملاويدل د الله ﷻ په اراده باندې موقوف دی ممکنه ده چه هغه ډير زور اولګوی اوددنيا نه هم محروم شی.د بد نيتې په وجه خو يې آخرت مخکښې نه خراب کړې وودنيا ورته هم ملاو نه شوه نودوانړو جهانونو نه محرومه شو.او که لږه شان دنيا ورته ملاو هم شی نو په نيش حساب ده.

دغه شان يو بل آيت کښې دا مضمون مقيد بيان کړې شوې دې فرمان دې ﴿مَن كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاءُ لِمَن نُّرِيدُ﴾ يعنی کوم کس چه ددنيا طالب وی تاسو کښې چه مونږ چا ته اوغواړو او څومره اوغواړو ورکوو بيابه هغه د پاره دوزخ خوښو چه دوزخ کښې بد حال او ذليله داخليږی . او څوك چه د آخرت طالب وی اودهغې دپاره چه څومره کوشش پکار وی هغه کوی او وی هم هغه ايمان والا نو نامکنه ده چه د داسې خلقو د کوششونو قدر دانی او نه شی دنياوی ورکړه خو عامه ده دې سره سره مونږ دهغه پوره امداد کوواوستا د رب دا دنياوی ورکړه په چا بنده نه ده.پخپله اوګوره چه مونږ يو ته په بل باندې څنګه فوقيت ورکړې دې . يقين ساتې چه د درجو اعتبار سره هم او د فضيلت حيثيت سره هم آخرت ډيرلوئې دې.د رسول الله ﷺ فرمان دې چه دې امت ته داوچتوالی او د برترې د نصرت او د بادشاهت زيرې واوروه.په دوی کښې څوك دينی عمل د دنيا دپاره کوی هغه ته به په آخرت کښې هيڅ حصه نه ملاويږی (١).

قوله تعالى: ﴿أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ﴾

مشرکان د خپل غټانو ايجاد کړې شوې شريعت مني :بيا فرمائی چه دا مشرکان د الله ﷻ ددين اتباع خو نه کوی بلکه چه کوم شيطانان او انسانان يې خپل لوې درجې والا ( غټان ) ګنړلی دی دوی چه ورته کوم حکمونه ښائی دوی هم هغه حکمونو ته دين وائی.حلال او حرام دې خپل غټانو په وينا پيژنی : د عبادت طريقې هم دوی ايجاد کړې دی کوم چه دوی کوی.دغه شان د مال احکام يې هم پخپله راويستې دی کوم چه دوی شرعی ګنړی چنانچه په جاهليت کښې بعضې ځناور هغوی پخپله حرام کړی وو مثلا هغه ځناور چه د هغه غوږونه به يې سوری کړل او دخپل خدايانو په نوم به يې پريخودل اوبچې به نې دحمل په صورت کښې دهغوی په نوم کول.کومې اوښې نه چه به نې لس بچې اوشول هغه به نې دهغوئې په نوم پريخودل . بيا به نې د هغوئې د تعظيم په خيال هغه په خپل ځان حرام ګنړل او بعضې څيزونه به نې حلال ګنړل لکه مرداره ،وينه او جواری . صحيح حديث کښې دی نبی ﷺ فرمائی ما عمرو بن لحی بن قمعة اوليدلو چه هغه دوزخ کښې خپلې کولمې راکاږلې . دا هغه کس دې چا چه د ټولو نه مخکښې د غير الله په نوم د ځناورو پريخودل ونيلې وو(٢) دا کس د خزاعه په

---

(١) احمد: ١٣٤/٥، ح/٢١٢٢٣، وسنده حسن ، ابن حبان: ٤٠٥، حاكم : ٣١١/٤،شعب الايمان : ٦٨٣٤.

(٢) صحيح بخاري كتاب المناقب باب قصة خزاعة: ٣٥٢١، صحيح مسلم: ٢٨٥٦.

بادشاهانو کښې وو هم ده ددې کارونو د ټولو نه مخکښې ایجاد کړې ووچه د جاهلیت په عربو کښې مروج وو.هم قریش والا په بت پرستۍ اچولی وو الله ﷻ دې په هغه باندې خپل غضب نازل کړی .

قوله تعالى: ﴿وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾

**قیامت دپاره یو وخت مقرر دې**: فرمائی که زما داخبره مخکښې نه مقرر شوې نه وه چه څه به ګنهګارانوله دقیامت راتلو پورې مهلت ورکوم نو مابه نن داکافران په خپل عذاب کښې راګیر کړې وو هغوی ته به د قیامت په ورځ د دوزخ دردناک او ډیرسخت عذاب ورکړې کیږی.د قیامت په میدان کښې به تاسو ګورې چه دا ظالمان خلق به د خپل کړو نه په لړزان او په یره کښې به وی خو نن به هیڅ یوځیز نه وی چه دوی به بچ کړی.نن خو به دوی د خپلو عملونو سزا ضرور څکی.ددوی بالکل برعکس د ایمان والو نیکانو خلقو حال به دا وی چه هغوی به امن اوسکون سره د جنت په باغونو کښې مزې کوی.د دوزخیانو د ذلت رسوائۍ او د یرې اود جنتیانو دعزت لوې والی آرام اوسکون خیال اوکړې. هغوی په قسما قسم مصیبتونو او تکلیفونو کښې وی اودوی په قسما قسم لذتونو اوراحتونو کښې وی عمده ښه خوراکونه بهترین لباس ښه کورونه بهترین او ښکلې ښځې او ډیر ښه ساز و سامان به دوی ته ملاویږی چه دهغې لیدل او اوریدل خو پریږده د یو انسان په ذهن او په تصور کښې هم دا څیزونه نه شی راتللې .حضرت ابو طیبه فرمائي چه د جنتیانو په سر باندې یو وریځ راشی او دوی ته به آواز اوشی چه اووائې د څه څیز وریدل غواړې ؟ پس څوک چه د څه وریدل غواړی هم هغه څیز به پرې ددې وریځو نه وریږی تردې پورې چه وائی به چه په مونږ دې ولاړې سینو والا هم عمر ښځې دې اووریږی چنانچه هم دغه پرې اووریږی.ددې وجې نې اوفرمائیل چه فضل کبیر یعنی زبردسته کامیابی کامل نعمت هم دا دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ذٰلِكَ الَّذِیْ | یُبَشِّرُ اللّٰهُ | عِبَادَهُ | الَّذِیْنَ | اٰمَنُوْا |
| دا هغه څیز دې | اچی زیرې ورکوی الله | بندګانو خپلو لره | هغه | اچی ایمان نې راوړو |
| دا هغه فضل دې چې الله ﷻ خپلو ایماندارو بندګانو باندې کړې دې چا چې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ | قُلْ | لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ | عَلَیْهِ |
| او عملونه نې | اوکړل نیک | ورته اووایه | نه غواړم زهٔ ستاسو نه | په دې کار ددین باندې |
| نیک اعمال کړی دی | ... (اې پیغمبره) ته ورته اووایه چې زه ستاسونه (نوره) هیڅ بدله نه غواړم | | | خو |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَجْرًا | اِلَّا | الْمَوَدَّةَ | فِی الْقُرْبٰى | وَمَنْ یَّقْتَرِفْ | حَسَنَةً |
| څه بدله | مګر غواړم | محبت دوستی | په خپلولئ کښې | او هغه څوک چې اوکړی | نیکی |
| د خپلولئ مینه محبت درنه غواړم | | | اوڅوک چې دنیکئ کارونه کوی | | نو مونږ به ورته |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نَّزِدْ | لَهٗ | فِیْهَا | حُسْنًا | اِنَّ اللّٰهَ | غَفُوْرٌ | شَكُوْرٌ ﴿۲۳﴾ |
| زیات به کړو مونږ | هغه لره | په هغې کښې | ښهٔ والې | بیشکه الله | بښونکی | قدردان دې |
| په کښې نوره نیکی زیاته کړو | | | | بیشکه الله ﷻ بښونکې (د نیکانو د نیکئ) قدردان دې | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ یَقُوْلُوْنَ | افْتَرٰى | عَلَى اللّٰهِ | كَذِبًا | فَاِنْ یَّشَاِ اللّٰهُ | یَخْتِمْ |
| ایا وائی دا خلق | چی دهٔ تړلی دی | په الله باندې | دروغ | پس که چری اوغواړی الله | مهر به اولګوی |
| ایا دوئ وائی چې دې پیغمبر په الله ﷻ دروغ جوړ کړی دی | | | | که الله ﷻ اوغواړی نو ستا | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى قَلْبِكَؕ | وَيَمْحُ اللّٰهُ | الْبَاطِلَ | وَيُحِقُّ | الْحَقَّ | بِكَلِمٰتِهٖؕ | |
| په زړه ستا باندې | او ختموي الله | باطل | او حق ثابتوي | حق لره | په فرمانونو خپلو سره | |
| په زړه به مهر اولګوي او الله ﷻ باطلې خبرې ختموي او حقې خبرې په خپل حکم ثابتې ساتي | | | | | | |
| اِنَّهٗ | عَلِيْمٌ | بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝ | | | | |
| بېشکه هغه | خبردار دی | په پټو خبرو دسينو باندې | | | | |
| هغه ته د زړونو پټ رازونه ښه معلوم دي | | | | | | |

قوله تعالى: اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِى الْقُرْبٰىؕ

**دمودة فى القربى مفهوم**: پورتنی آيتونو کښې دجنت دنعمتونو دذکر بيان دې چه ايمان دارنيکانو خلقو ته دې د دې زيرې وی . بيا خپل نبی ته فرمائی چه د قريشو دې مشرکانو ته اووايه چه په دې تبليغ او ستاسو په دې خير خواهې باندې خو څه تاسو نه څه نه غواړم .ستاسو خير خواهی يو طرف ته که تاسو چرې ددې نه منع شې چه مادخپل رب رسالت رسولو ته پرېږدې اودخپلولې دا رشته مخې ته کېږدې او ما نه د تکليف رسولو نه منع شې نو دا هم لويه خبره ده .

صحيح بخاری کښې دی چه دحضرت ابن عباس نه ددې آيت دتفسير په باره کښې تپوس اوشونو حضرت سعيد بن جبيراووې د آل محمد ﷺ قرابت دې .دا ئې چه واورېدل نو هغه اوفرمائيل چه تا تادی اوکړه.واورد د قريشو چه څومره قبيلې وې ټولوسره دحضور اکرم خپلولی وه نو مطلب دا دې چه تاسو د دغې خپلولې لحاظ اوساتې چه زما ستاسو سره ده ([1]).

حضرت مجاهد حضرت عکرمه حضرت قتاده حضرت سدی حضرت ابو مالك حضرت عبدالرحمن بن عوف وغيره هم ددې آيت هم داتفسير کوی .طبرانی کښې دی چه رسول اللهﷺ قريش کافرانو ته اوفرمائيل چه څه تاسو نه ددې څه اجرت نه غواړم مګر دا چه تاسو دهغې خپلولې خيال اوساتې چه زما تاسو سره ده . زما ددې رشته دارې حق چه په تاسو باندې دې هغه ادا کړې ([2]).

مسند احمد کښې دی چه حضورﷺ اوفرمائيل چه ما تاسو ته کوم دليلونه درکړې دی دکوم هدايت لاره مې درته ښودلې ده په هغې باندې تاسو نه څه بدله نه غواړم سوا ددې نه چه تاسو الله ﷻ غوښتو والا شې اودهغه د اطاعت په وجه قرب او نزديکت حاصل کړې ([3])حسن بصری نه هم دغه شان تفسير منقول دې.نودا دويم قول شو.رومبې قول دحضورخپله رشته داری ورياد ول.دويم قول د هغوې دا طلب چه خلق دې د الله ﷻ قرب حاصل کړی . دريم قول چه د حضرت سعيد بن جبير په روايت کښې تير شو چه تاسوزما خپلوانو سره احسان او نيکی کوې.د ابو الديلم بيان دې هرکله چه حضرت علی بن حسين قيد شو او د دمشق په بالاخانه کښې واچولې شو نويو شامی اووې چه دالله ﷻ شکر دې چه هغه تاسو قتل کړې او تاسو ئې ختم کړې او د فتنې ترقی ئې رامنع کړه.دائې چه واورېدل نو وې فرمائيل چه آيا تا قرآن هم وئيلې دی ؟هغه اووې ولې نه .وې فرمائيل په دې کښې دې د حم سورتونه نه دی لوستی؟هغه اووې ډير ښه ټول قرآن به مې لوستو اود حم سورتونه به مې نه لوستل؟هغه ورته اوفرمائيل بيا ولې په دې کښې تا ددې آيت تلاوت نه دې کړې قُلْ لَّاۤ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِى الْقُرْبٰىؕ يعنی زه تاسونه څه بدله نه غواړم مګر دقرابت محبت.هغه اووې ولې تاسوهغه ئې؟هغوی اوفرمائيل او جی.

[1]) صحيح بخارى كتاب التفسير سورة الشورى باب قوله (( الاالمودة فى القربى...)):٤٨١٨.
[2]) المعجم الاوسط .
[3]) احمد:٢٦٨/١.

د حضرت عمرو بن شعيب نه چه کله ددې ايت تفسير باره کښې تپوس اوشو نو هغوی اوفرمائيل مراد د رسول الله ﷺ قرابت دې.

**قوله تعالى: قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًا**

**ددې ايت مبارک شان نزول څه دې؟:** ابن جرير کښې دی چه انصارو خپل د اسلام خدمتونه د فخر په طوراوشميرل په دې باندې ابن عباس يا حضرت عباس اوفرمائيل مونږ تاسو نه افضل يو. کله چه دا خبر حضور ﷺ ته اورسيدو نو دئې مجلس ته راغلو او وې فرمائيل اې انصارو آيا تاسو ذلت په حالت کښې نه وئ؟ بيا الله ﷻ زما په وجه تاسو ته عزت درکړو. هغوئې عرض اوکړو چه بې شك تاسو رشتيا وائې. وې فرمائيل آيا تاسو گمراه نه وئ بيا الله ﷻ زما په وجه تاسو ته هدايت درکړو. هغوی عرض اوکړو بې شکه تاسو رښتيا اوفرمائيل. بيا ئې اوفرمائيل اوس تاسو ماته ولې نه وايئ؟ هغوئې عرض اوکړو څه اووايو؟ وې فرمائيل ولې نه وائې چه آيا ستا قوم ته نه وې ويستلې؟ هغه وخت مونږه تا ته پناه درکړه. آيا هغئې ته دروغژن نه وې گنړلې هغه وخت مونږه ستا تصديق اوکړو. آيا هغوئې ذليله کول نه غوښتل هغه وخت مونږه ستا مدد اوکړو. دغه شان نبى ﷺ نورې هم ډيرې خبرې اوکړې تردې پورې چه انصار خپلوکونډو باندې تيټ شول هغوئې عرض اوکړو حضورزمونږ اولاد او څه چه مونږ سره دی دا ټول دالله او د هغه د رسول ﷺ د پاره دی.

بيادا آيت قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ نازل شو. ابن ابى حاتم کښې هم ددې نزدې ضعيف سند سره مروى دی. په بخارى او مسلم کښې دا حديث شته دې په هغې کښې دی چه دا واقعه د حنين د غنيمت د تقسيم په وخت پيښه شوې وه او په دې کښې د آيت د نازليدو هم ذکر نشته او ددې آيت په مدينه کښې د نازليدلو منلو کښې هم لږ شان تامل دې ځکه چه دا سورت مکى دې. بيا چه کومه واقعه په حديث کښې مذکور ده په هغه واقعه او په دې آيت کښې څه داسې زيات ظاهرى مناسبت هم نشته. په يو روايت کښې دی چه خلقو تپوس اوکړو چه د آيت نه کوم خلق مراد دی؟ چه هغوئې سره د محبت کولو مونږ ته د الله ﷻ حکم دې. رسول الله ﷺ اوفرمائيل حضرت فاطمه اودهغې اولاد[1] خوددې سند ضعيف دې اوددې راوى مبهم دې چه مشهور نه دې. بيا د هغه استاديو شيعه دې چه دثقاهت نه بالکل غورزيدلې دې دهغه نوم حسين اشقر دې داشان حديث دهغه روايت سره به څنګه منلې شې؟ بيا په مدينه کښې د آيت نازليدل ډيره لرې خبره ده. حق خبره داده چه دا آيت مکى دې اوپه مکه کښې د حضرت فاطمه نکاح هم نه وه شوې نو اولاد څنګه؟ د هغې نکاح خو حضرت على سره د بدر د غزا نه پس په ۲ هجرى کښې شوې ده. ددې صحيح تفسير هم هغه دې چه حبر الامة ترجمان القرآن حضرت عبد الله بن عباس ﷺ کړې دې چه د بخارى په حواله سره مخکښې تير شوې دې. مونږ اهل بيت سره د خير خواهې کولو نه منکر نه يو. مونږ منو چه هغوئې سره احسان او سلوك او د هغوئې اکرام او احترام ضرورى څيز دې. په مخ د زمکه د هغوئې نه زيات پاك او صفا نبه کورنئې بله نشته. حسب او نسب او فخر کښې بې شکه دا د ټولونه اعلى ده خاص کر په دې کښې هغه چه د نبى دسنتو ا تباع کوونکې دی لکه څنګه چه د اسلافو طريقه وه. يعنې د حضرت ابن عباس او د آل عباس او د حضرت على او آل على. رسول الله ﷺ پخپله خطبه کښې فرمائيلې دی زه په تاسو کښې دوه څيزونه پريږدم کتاب الله او زما خاندان اودا دوانړه به جدا نه شی ترڅو چه په حوض باندې ما له رانشى ([2]). په مسند احمد کښې دی چه يو ځل حضرت عباس بن عبد المطلب رسول الله ﷺ ته شکايت اوکړو چه قريش والا کله په خپلو کښې ملاوېږی نو ډير په رونړ تندی ملاوېږی خو مونږ سره په خوشالې نه ملاوېږی. دا ئې چه واوريدل

---

[1] ) طبرانى : ١٢٣٨٤،.

[2] ) صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة باب فضائل على بن ابى طالب ﷺ : ٢٤٠٨، بتصر يسير ترمذى: ٣٧٨٨.

نوحضورﷺډير خفه شو او وې فرمائيل په الله قسم دچا په قبضه كښې چه زما ساه ده دهيچا په زړه كښې ايمان ترهغه وخت پورې نشي داخليدې ترسو چه هغه الله ﷻ دپاره اودهغه د رسول په وجه تاسو سره محبت نه ساتی (۱).

اوپه روايت كښې دى چه حضرت عباس اووئيل چه قريشي خپلو كښې خبرې كوى خو چه مونږه اووينى نوچپ شى دا ئې چه واوريدل نو د غصې دوجې دنبى ﷺ په تندى باندې لكيرې جوړې شوې او وې فرمائيل والله د چا مسلمان په زړه كښې ايمان تر هغه وخته پورې نشى داخليدې ترسو چه هغه الله د پاره او زما د رشته دارې په وجه محبت نه ساتى (۲). صحيح بخارى كښې دى چه حضرت صديق اكبر اوفرمائيل اې خلقو! د حضورﷺ لحاظ د حضور ﷺ په اهل بيت كښې ساتې(۳)يو بل صحيح روايت كښې دى هغوئې حضرت على ﷺ ته اوفرمائيل په الله قسم د رسول الله خپلوانو سره خپلولى كول ما ته د خپلو رشته دارو سره خپلولى كولو نه زيات ښه لګى (۴). خكه چه ستا اسلام حضور ﷺ ته د خطاب داسلام نه زيات محبوب وو(۵) پس د اسلام ددې دووېرقيدونكوستورودمسلمانانودې دوانړو سردارانو چه كومه معامله د آل رسول اود پيغمبرﷺ د خپلوانو سره وه هم هغه د عزت او محبت معامله نورو مسلمانانو له د رسول الله ﷺ د اهل بيت او رشته دارو سره ساتل پكار دى.خكه چه د پيغمبرانو نه پس د ټولې دنيا نه افضل هم دا دوانړه د رسول خليفه ګان دى پس مسلمانانو له د دوى اتباع كول پكار دى او د رسول الله د اهل بيت او خاندان او قبيلې سره ډير عقيدت سره پيش راتلل پكار دى . الله ﷻ دې دوانړو خلفاو نه او اهل بيت نه او د حضور ﷺ د ټولو صحابو نه خوشاله شى او ټول دې په خپله رضامندې كښې واخلى .

صحيح مسلم وغيره كښې حديث دې چه زيد بن حيان او حصين بن ميسره او عمر بن مسلم حضرت زيد بن ارقم له لاړل .حضرت حصين اووې اې حضرت ! تاسو نه خولوې لوې خير او بركت ملاو شو تاسو الله نبى ﷺ په خپلو سترګو ليدلې دې تاسو د الله د نبى خبرې په خپل غوږونو اوريدلې دى هغوئ سره مو جهاد كړې دې هغوئ سره مو مونځونه كړې دى حق خبره دا ده چه لوې لوې فضيلتونه تاسو ته حاصل دى .اوس تاسو يو حديث مونږ ته هم واوروې .په دې باندې حضرت زيد اوفرمائيل اې زما وراره واوره زما عمر ډير زيات شوې دې .دحضورﷺ د رحلت هم زمانه اوشوه بعض څيزونه په دماغ كښې محفوظ هم نه دى پاتې شوې اوس خوهم هغه خان سره ساتې چه څه درته څه پخپله واوروم هغه منې او ما ته تكليف مه راكوې چه زه په تكلف سره بيان كړم .

داهل بيت په شان كښې خطبه :بيا هغوئ اوفرمائيل چه د مكې او دمدينې په مينځ كښې د اوبو خائې سره نزدې چه خم ورته وائ په اودريدو سره د الله رسول ﷺ مونږ ته ئې داخطبه واوروله.د الله ﷻ دحمد او ثنا نه پس ئې اوفرمائيل چه اې خلقو زه يو انسان يم څه عجيبه ده چه اوس ما له دالله يو قاصد راشى اوځه دهغه خبره اومنم .واورې څه په تاسوكښې دوه څيزونه پرېږدم يوخو دالله كتاب چه په كښې نوراوهدايت دې.تاسو د الله كتاب په مضبوطې سره اونيسې اوپدې باندې منګولې اولګوى .پس ددې ئې ډير رغبت راكړو او ددې ئې ډير تاكيد اوكړو.بيا ئې اوفرمائيل چه زه تاسو ته خپل اهل بيت باره كښې الله ﷻ دريادوم .دا ئې چه واوريدل نو حصين د حضرت زيد نه تپوس اوكړو اې زيد د حضورﷺ

---

(۱) ترمذى كتاب المناقب باب مناقب ابى الفضل عم النبى ﷺ : ۳۷۵۸.
(۲) احمد: ۶۳۹/۲ ، دلائل النبوة : ۱۶۷/۱،
(۳) صحيح بخارى كتاب فضائل اصحاب النبى ﷺ : باب مناقب قرابة رسول الله ﷺ : ۳۷۱۳.
(۴) صحيح بخارى حواله سابق : ۳۷۱۲.
(۵) ابن اسحاق: فى السيرة ( سيرة ابن هشام : ۴۵/۴) .

اهل بيت څوك دي؟ايا د هغوئي بيبياني په اهل بيت كښي نه دي؟وي فرمائيل بيشكه دهغوئ بيبياني هم په اهل بيت كښي دي خود نبي ﷺ اهل بيت هغه دي چا باندي چه د هغوئ نه پس صدقه حرامه ده تپوس ئي اوكړو هغه څوك دي ؟ وي فرمائيل آل علي آ ل عقيل آل جعفر آل عباس .تپوس ئي اوكړو په دي ټولو صدقه حرامه ده؟وي فرمائيل او جی([1])په ترمذی كښي دي حضورﷺ اوفرمائيل زه په تاسو كښي يوداسي څيز پريږدم كه تاسو هغه مضبوط اونيسه نوبي لاري كيږئي به نه.يو بل زيات عظمت والا دي .كتاب الله چه د الله د طرف نه يوه زوړنده رسي ده چه داسمان نه زمكي ته راغلي ده او دويم څيز زما خاندان زما اهل بيت دي او دا دوانړه به جدا كيږي نه ترسو چه ما له حوض كوثر باندي راشي.پس ګوري چه زمانه پس څنګه په دوي كښي زما اتباع كوي ؟([2]) امام صاحب فرمائ چه دا حديث حسن غريب دي .صرف په ترمذی كښي هم دا روايت دي .دحضرت جابر بن عبد الله ﷺ په روايت سره په ترمذی كښي دی د عرفي په ورځ رسول الله ﷺ په خپلي اوښي باندي سور شوي وو چه ورته قصواء ونيلي شي اوخطبه ئي وركړه .چه په هغي كښي اوفرمائيل چه اي خلقو زه په تاسو كښي يو داسي څيز پريږدم كه چري هغه تاسو واخستو نو چري به هم ګمراه نه شي.كتاب الله او زما عترت اهل بيت ([3])د ترمذی په يو بل روايت كښي دی چه دالله نعمتونه مخښي ته ايږدي اود الله سره محبت ساتي ا و الله د محبت په وجه ما سره محبت ساتي.او زمادمحبت په وجه زما اهل بيت سره محبت ساتي([4])دا حديث او پورتني حديث حسن غريب دی.ددي مضمون نو ر حديثونه مونږ د﴿انمايريدالله ليذهب عنكم الرجس اهل البيت﴾ په تفسير كښي وارد كړي دی.دلته د هغي دوباره راوړلو ضرورت نشته.فالحمد لله .يو ضعيف حديث په مسندابو يعلى كښي دي چه ابو ذرد بيت الله د دروازي كنډه نيولي وه او وي فرمائيل اي خلقوڅوك چه ما پيژني نو هغه ما هسي هم پيژني او څوك چه نه پيژني نوهغه دي اوس ما اوپيژني چه زما نوم ابو ذر دي . واوري ماد رسول الله ﷺ نه اوريدلي دی چه په تاسو كښي زماد اهل بيت مثال د نوح ﷺ دكشتي دي څوك چه هغي ته لاړل هغوئ نجات اوموندو او څوك چه داخل نه شو هغه هلاك شول ([5]) .

**قوله تعالى:: ﴿وَمَنْ يَقْتَرِفْ حَسَنَةً﴾**

**دنكيئ هومره بدله ::**بيا ئي اوفرمائيل چا چه نيك عمل اوكړو مونږ د هغه ثواب نور هم زياتو لكه څنګه چي ئي يو بل آيت كښي اوفرمائيل چه الله ﷻ ديوي ذري برابر هم ظلم نه كوي.كه نيكي وی نو نوره ئي هم زياتوی اودخپل طرف نه اجر عظيم وركوی.د بعضي اسلافو قول دي چه دنيكي ثواب ددي نه پس نيكي ده اود برائي بدله ددي نه پس برائی ده.بيا فرمان اوشو چه الله ﷻ د ګناهونو بخښونكي دي او دنيكو قدر داني كولو والا دي هغه زياتوی .

بيا ئي اوفرمائيل چه دا جاهلان كافران څه وائ چه داقرآن تا د خپل طرف نه جوړ كړي دي د الله ﷻ په نوم كړي دي داسي نه ده كه چري وي نو الله به ستا په خوله مهر وهلي وو او تا ته به څه هم ياد نه وو . لكه څنګه چه فرمان دي ﴿وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ﴾يعنی كه چري رسول زمونږ په ذمه څه خبري لګولي وي نو مونږ به د هغه ښي لاس نيولي وو او د هغه د زړه رګ به مو كټ كړي وي او تاسو كښي به چا هم هغه ددي سزانه نه وويچ كړي.يعنی د دوئ زمونږپه كلام كښي لږ شان هم زياتي كړي وي نو داسي

---

[1] )احمد : ٤٦٦/٤، صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة ، باب من فضائل على بن ابي طالب ﷺ : ٢٤٠٨.
[2] ) ترمذی كتاب المناقب باب فی مناقب اهل بيت النبی ﷺ: ٣٧٨٨ وهو صحيح.
[3] ) ترمذی كتاب المناقب باب فی مناقب اهل بيت النبی ﷺ: ٣٧٨٦ وهو صحيح
[4] ) ترمذی كتاب المناقب باب فی مناقب اهل بيت النبی ﷺ: ٣٧٨٩ وهو حسن.
[5] ) حاكم : ٣٤٣/٢، وسنده حسن .

انتقام به مواخستې ور چه د دنیا یوې هستې به هم دئ نه وو بچ کړې .
[هنفی]اددي نه پس جمله یمح الله یختم باندې معطوف نه ده بلکه دا مبتداده او د مبتدا په وجه مرفوع ده یختم باندې عطف نه دې چه مجزوم وی.د واو په کتابت کښې نه راتلل داصرف د امام د رسم خط د موافقت د وجې نه دې لکه ﴿سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ﴾ کښې واو په لیکلو کښې نه دې راغلې.او ﴿وَيَدْعُ الْإِنسَانُ بِالشَّرِّ﴾ کښې واو نه دې لیکلې شوې.او ددې نه پس د جملې و یحق الحق عطف په یمح الله باندې دې یعنی الله ﷻ حق واضح او بیان کړې دې خپلو کلماتو سره یعنی دلائل ئې بیان کړل او حجت ئې پیش کړو اوهغه ښه دانا اوبینا دې . د زړونو رازونه او د سینو پټې خبرې هغه باندې کو لاو شوې دې .

| |
|---|
| وَهُوَ الَّذِیْ یَقْبَلُ |
| او هغه هغه ذات دې \| چې قبلوی |
| او هغه (الله ﷻ) هغه ذات دې |
| التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهٖ وَیَعْفُوْا عَنِ السَّیِّاٰتِ وَیَعْلَمُ مَا |
| توبه \| دبندګانو خپلو نه \| او عفوه کوی \| دګناهونو نه \| او پوهیږی \| په هغې |
| چې د خپلو بندګانو توبه قبلوی \| اوګناهونه ورته معاف کوی \| اوتاسو چې څه کارونه کوئ |
| تَفْعَلُوْنَ ۝ وَیَسْتَجِیْبُ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا |
| چې کوئ ئې تاسو \| او دعا قبلوی \| دهغه کسانو \| چې ایمان ئې راوړو \| او وې کړل عملونه \| |
| په هغې باندې خبر وی \| او دهغو خلقو دعا قبلوی چې ایمان ئې راوړې دې \| اونیک کارونه کوی |
| الصّٰلِحٰتِ وَیَزِیْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ط وَالْکٰفِرُوْنَ لَهُمْ |
| نیك \| او زیات ورکوی هغوئ ته \| دفضل خپل نه \| او کافران چې دی \| هغوئ لره دې \| |
| او د خپل فضل نه ورته نور زیادت کوی \| ........... او څوک چې کافران دی هغوئ دپاره |
| عَذَابٌ شَدِیْدٌ ۝ وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ |
| عذاب \| سخت \| او که فراخه کړې وې الله \| رزق \| دپاره دبندګانو خپلو |
| سخت عذاب مقرر دې \| او که الله ﷻ خپلو بندګانو ته روزی فراخه کولې |
| لَبَغَوْا فِی الْاَرْضِ وَلٰکِنْ یُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ |
| نو خامخا به سرکشی کړې وه هغوئ \| په زمکه کښې \| ولیکن نازلوی هغه \| په اندازه سره (رزق) |
| نوهغوئ به په دنیا کښې شرارتونه کول \| خو الله ﷻ چې څومره غواړې په یو اندازه رزق نازلوی |
| مَا یَشَآءُ ط اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِیْرٌ بَصِیْرٌ ۝ |
| هغه \| چې غواړې هغه \| بیشکه هغه \| په بندګانو خپلو باندې \| خبردار دې \| نظر لرونکې دې |
| \| ..........بیشکه هغه (الله) دخپلو بندګانو نه خبردې \| اوهر څه وینې ګوری |
| وَهُوَ الَّذِیْ یُنَزِّلُ الْغَیْثَ مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَیَنْشُرُ |
| او هغه هغه ذات دې \| چې نازلوی باران \| پس دهغې نه \| چې ناامیده شو هغوئ \| او راخوروی |
| او الله ﷻ هغه ذات دې \| چې دخلقو دناامیدئ نه پس باران راوروی \| اوخپل رحمت |

| | | | |
|---|---|---|---|
| رَحۡمَتَهٗؕ | وَهُوَ الۡوَلِیُّ | الۡحَمِیۡدُ۝ | |
| رحمت خپل \| او هغه ولی (ذمه وار) دی \| ستائیلی شوی دی \| | | | |
| خوروی \| او هغه دهرچا کار ساز ستائیلی شوی دی \| | | | |

**قوله تعالی::**

**ربښتونی توبه ګناهونه ختموی:** الله ﷻ خپل احسان او خپله مهربانی بیانوی چه هغه په خپل غلامانو باندې دومره مهربانه دې چه د بد نه بد ګنهګار هم د خپلې د بدکارئ نه منع شی او په اخلاص سره هغه ته تیښ شی په ربښتونی زړه توبه اوباسی نو هغه په خپل کرم او رحم سره د هغه پرده پوشی کوی. د هغه ګناه معاف کوی او خپل فضل د هغه شامل حا ل کوی لکه څنګه چه بل آیت کښې دی ﴿وَمَنۡ یَّعۡمَلۡ سُوۡٓءًا اَوۡ یَظۡلِمۡ نَفۡسَهٗ﴾ څوک چه څه بد کار اوکړی یا په خپل ځان باندې ظلم اوکړی بیا د الله ﷻ نه بخښنه او غواړی نو هغه به الله رب العزت غفور او رحیم بیا مومی.

**الله تعالی د خپل بنده په توبه ډیر خوشحالیږی::** په صحیح مسلم کښې دی الله ﷻ د خپل بنده د توبې نه د دې نه زیات خوشالیږی چه د چا اوښه په ځنګل کښې ورکه شوې وی چه په هغې باندې دهغه خوراك او څښاك هم وی چه هغه د هغې ډیر تلاش اوکړی او عاجز راشی او دیوې ونې لاندې راشی پریوزی او دخپل ځان نه هم لاس اوینځی او اوښې نه بالکل نا امیده شی چه یکدم هغه اوګوری چه اوښه هغه سره نزدې ولاړه ده دې فورا پاسی کینی د هغې واګې اونیسی او دومره زیات خوشاله شی چه بې تحاشه د هغه د خولې نه او څی چه بې شکه ته زما غلام یې اوزه ستا رب یم.هغه د خپلې خوشالې په وجه دا غلطی اوکړی(۱) یو مختصر حدیث کښې دی چه الله ﷻ دخپل بند ه د توبې نه دومره زیات خوشالیږی چه دومره خوشالی هغه کس ته هم نه وې چه په داسې ځائې کښې وی چه هلته د تندې د وجې هلاك کیږی اوهلته د هغه د سورلې څناور ورك شی چه هغه ته یکدم ملاو شی.حضرت ابن مسعود نه چه کله دامسئله او پښتلې شوه چه یو کس دیوې ښځې سره غلط کار کوی بیا هغې سره نکاح کولې شی ؟ هغوئ اوفرمائیل په نکاح کښې هیڅ حرج نشته دې بیا هغوئ هم دا آیت اولوستلو(۲) توبه خود مستقبل دپاره قبوله شی او ګناهونه تیر شوی معاف شی.ستا د هر فعل اودهرعمل هغه ته علم دې. باوجود ددې چه تیتیدونکو ته متوجه کیږی او قبلوی ئې.هغه دایمان والو او د نیکانو دعاګانې قبلوی هغوی که ځان له دعا کوی او که نو رو له .

**دمعاذ ﷺ خطبه::** حضرت معاذ په ملك شام کښې د خطبې په دوران خپل مجاهد ملګرو ته فرمائ تاسو ایمان والا یئ او جنتیان یئ او زه امید لرم چه دا رومیان او فارسیان چه تاسو هغه قیدوې او راولې یئ . څه عجیبه ده چه دوئ هم جنت ته لاړ شي.خکه چه په دویئ کښې څوك ستاسو څه کار اوکړی نو تاسو هغه ته وایئ چه الله دې په تا رحم اوکړی تا ډیر ښه کار اوکړو الله د تا ته برکت در کړی تا ډیر ښه اوکړه وغیره او د قرآن وعده ده چه الله د ایمان والو او د نیك خلقو دعاګانې قبلوی.بیا هغوې هم د دې آیت ترجمه اوکړله.د دې معنی دا ده الله ﷻ دهغوې اوری.د ﴿الَّذِیۡنَ یَسۡتَمِعُوۡنَ الۡقَوۡلَ﴾ دا تفسیر شوې دې چه څوك خبره منی او د هغه اتباع کوی.او لکه څنګه چه ئې اوفرمائیل ﴿اِنَّمَا یَسۡتَجِیۡبُ الَّذِیۡنَ یَسۡمَعُوۡنَ﴾ ابن ابی حاتم کښې دی چه د خپل فضل نه زیات ورکول دادی چه د دې په حق کښې دداسې خلقو سفارش قبلوی چا سره چه هغوئ څه ښه کړې وی .

---

(۱) صحیح بخاری الدعوات باب التوبة : ۶۳۰۹، مختصرا .

(۲) الطبری : ۵۳۳/۲۱.

حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله ددې آيت په تفسير كښې فرمائيلي دي چه هغه به د خپل رونړو سفارش كوي اوهغه ته به زيات فضيلت ملاوېږي يعنی د رونړو د رونړو د سفارش اجازت به ورته هم اوشي[1] دمومنانو ددې عزت او شان د بيانولو نه پس ئې د كافرانو د بد حالې بيان فرمائ چه هغوئ ته به ډېر دردناك او د ويرې عذاب وركړې كيږي .

بيا يې اوفرمائيل كه ددې بندېانو ته د دې د روزې وسعت ملاو شوې وو د دوی د ضرورت نه زيات دوی ته ملاو شوې وه نو دوېئ به مستې او عياشې كښې اخته شوې وو او د دنيا كښې به يې فساد جوړ كړې وو.او د دنيا امن ته به يې اور ورته كړې وو يو بل پوكل او خوړل او سركشی اوتكبر او بې پرواهی به د حد نه زياته شوې وه.ددې وجې د حضرت قتاده فلسفيانه مقوله ده ژوند سامان دومره ښه دې څومره كښې چه سركشی او بې پرواهی نه راځي.ددې مضمون پوره حديث ما ته په تاسو باندې د تولو نه زياته يره د دنيا د نمائش ددې مخكښې بيان شوې دې .بيا فرمائي هغه په يو اندازه روزی رسوی د بنده د صلاحيت هغه ته علم دې د غنا او د فقيرې مستحق هغه ډېر ښه پيژني .

د حديث قدسی كښې دی زما داسې بندګان هم شته چه د هغوئ صلاحيت په مالدارې كښې دې . كه زه هغوئ فقيران جوړ كړم نو هغې به د دينداری هم لاس اوينځی . او زما بندګان داسې هم دی چه د دغې مناسب هم فقيری ده . كه هغې مال حاصل كو او مالداران شول نو په دې حالت كښې لګه زه به د هغوئ دين خراب كړم[2]. بيا ارشاد كيږي چه خلق د رحمت د باران په انتظار كښې مايوسه شي په داسې پوره حاجت او د ضرورت په وخت كښې زه باران وروم .دهغوئ نا اميدی او خشك سالی ختمه شي او زما رحمت په عام توګه خور شي .

امير المومنين حضرت عمر بن خطاب ته يو كس وائ چه قحط سالی شوه او اوس خو خلق د باران نه بالكل نا اميده شول . نوهغوئ اوفرمائيل چه لاړ شه اوس به باران انشاء الله ضرور كيږي[3] بيا ئې ددې آيت تلاوت اوكړو.هغه ولی او حميد دې يعنی دمخلوقاتو تصرفات هم د هغه په قبضه كښې دی د دغه كارونه د تعريف قابل دی د مخلوق په خير باندې هغه خبردار دې اودهغې د نفعې هغه ته علم دې اودهغه كارونه د ګټې نه خالي نه دی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمِنْ اٰيٰتِهٖ | خَلْقُ | | | |
| او دښنو دهغه نه | پيدا كول | | | |
| او دالله ﷻ د (وحدانيت) په ښنو كښې | | | | |
| السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَمَا | بَثَّ | فِيهِمَا مِنْ دَآبَّةٍ |
| د اسمانونو | او دزمكې دی | او هغه | چې خواره كړې ئې دی | په دې دواړو كښې \| دساه مخلوق |
| داسمانونو او د زمكې پيدا كول دی \| اود ساه كوم ځيزونه چې ئې په دې دواړو كښې خواره كړې دی | | | | |
| وَهُوَ | عَلٰى جَمْعِهِمْ | اِذَا يَشَآءُ | قَدِيْرٌ | وَمَآ اَصَابَكُمْ |
| او هغه | په راغونډولو ددوئ | كله چې اوغواړي | قادر دې | او هغه چې اورسيدو تاسو ته |
| او هغه (الله) چې كله اوغواړي نو ددوئ په راجمع كولو قادر دې \| او تاسو ته چې كوم مصيبت | | | | |

[1] الطبری :۵۳٤/۲۱.
[2] تفسير البغوی :۱۸۷۷،
[3] الطبری :۵۳۷/۲۱.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِّنْ مُّصِيْبَةٍ | فَبِمَا | كَسَبَتْ | اَيْدِيْكُمْ | وَيَعْفُوْا |
| څه مصيبت | نو په سبب دهغې عمل دې | چې كسب كړې دي | لاسونو ستاسو | او عفوه كوي هغه |
| رسي نودخپل عمل دلاسه در رسي او ډيرداسي گناهونه دى كوم چي درته الله ﷻ | | | | |
| عَنْ كَثِيْرٍ ۝ | وَمَآ اَنْتُمْ | بِمُعْجِزِيْنَ | فِى الْاَرْضِ ۚ | وَمَا لَكُمْ |
| ډيرو گناهونو نه | او نه يئ تاسو | عاجزه كونكي (الله لره) | په زمكه كښې | او نشته تاسو لره |
| معاف كوي او تاسو هغه د زمكي په مخ باندې عاجزه كولې نشئ او دالله ﷻ نه سوا | | | | |
| مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ | مِنْ وَّلِيٍّ | وَّلَا نَصِيْرٍ ۝ | | |
| بې دالله نه | څوك دوست | او نه مدد گار | | |
| ستاسو هيڅوك ملگرې يا مددگار نشته | | | | |

قوله تعالى: وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ د الله ﷻ د قدرتونو بيان: دالله ﷻ دعظمت قدرت او دسلطنت بيان روان دې چه اسمان او زمكې هم هغه پيدا كړې دى او په دې كښې ټول مخلوق هم هغه الله خور كړې دې .فرښتې او انسانان او پيريان اومختلف قسمه څناور كوم چه په گوټ گوټ كښې خواره شوې دى د قيامت په ورځ به هغه دا ټول په يو ميدان كښې جمع كوي چه ددې حواس به قائم نه وى او په دوى كښې به عدل او انصاف كيږي .

قوله تعالى: وَمَآ اَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيْبَةٍ

بيا فرمائي اې خلقو!تاسو ته چه كوم مصيبتونه در رسى هغه ټول په اصل كښې ستاسو دگناهونو بدله ده او اوس خوهغه غفور و رحيم الله ستاسو ډير بدكارو باندې پرده اچوى او هغه معاف كوى كه په هره گناه تاسواونيسى نو تاسو به بيا په زمكه هم نه گرځې .په صحيح حديث كښې دى چه مومن ته چه كوم تكليف سختى او غم او پريشانى رسى د هغې په وجه الله ﷻ دهغه خطاگانې معاف كوى تردې چه د يو ازغى د ننوتو په بدله كښې هم (١) كله چه آيت ﴿فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ﴾ الخ نازل شو نوهغه وخت صديق اكبر روټې خوړله هغه چه دا واوريدل نو د روټې نه يئ لاس اوچت كړو او وې وئيل يارسول الله ﷺ !آيا دهرهر بدې او نيكې بدله به وركړې كيږى؟ نبى ﷺ اوفرمائيل واوره دطبيعت خلاف چه كوم څيزونه وى داټول د بدو اعمالو په بدله كښې دى اونيكې ټولې الله ﷻ سره جمع شوې دى.حضرت ابو ادريس فرمائي هم دا مضمون په دې آيت كښې بيان شوې دى(٢)امير المومنين حضرت على ﷺ فرمائي راشئ چه څه تاسوته د كتاب الله د ټولو نه غوره آيت واوروم او ورسره حديث هم .

حضور ﷺ مونږ ته د دې آيت تلاوت اوكړو او څما نوم يئ واخستو او وې فرمائيل واوره چه ددې تفسير هم تاسو ته اوښايم تا ته چه څه بيمارئ سختئ اومصيبتونه در رسى هغه ټول بدله ده ستاسو د اعمالو. د الله ﷻ حلم ددې نه ډيرزيات دې چه بيا په دې په آخرت كښې هم سزا وركړى اواكثر بدې معاف كوى نودهغه دكرم نه دا ناممكنه ده چه دنيا كښې په معاف شوو خطا گانو باندې يئ په آخرت كښې اونيسى(٣) ( مسند احمد )

---

[1] )صحيح بخارى المرضى باب ماجاء فى كفارة المرض:٥٦٤٢، صحيح مسلم:٢٥٧٣.

[2] )الطبرى :

[3] ) احمد:١\٨٥، مسند ابى يعلى : ٤٥٣. مجمع الزوائد:١٠٤/٧.

په ابن ابی حاتم کښې هم داروايت دحضرت علي ﷺ په قول سره مروی دي په هغې کښې دی چه ابو جحيفه چه کله حضرت علي ﷺ له لاړو نو هغوئ اوفرمائيل زه تاسو ته يو داسې حديث اوروم چه هغه يادساتل دهرمسلمان فرض دی .بيا ئې دا تفسير دخپل طرف نه ددې آيت واورو. په مسند کښې دی چه دمسلمان په جسم کښې چه کوم تکليف وی د هغې په وجه الله ﷻ د هغه گناه معاف فرمائ (۱) هم د مسند په يو بل حديث کښې دی چه کله د ايماندار بنده گناهونه زيات شی اودهغه د کفارې څه څيز هغه سره نه وی نوالله ﷻ هغه په څه رنج اوغم کښې مبتلا کړی اوهغه دهغه دگناهونوکفاره جوړ شی.

(۲) په ابن ابی حاتم کښې د حضرت حسن بصری روايت دی چه ددې آيت په نازليدو حضور ﷺ اوفرمائيل په هغه الله قسم د چا په قبضه کښې چه د محمد ساه ده چه ددې لرگی لږ شان گريدل درگ گړوړ کيدې شی تردې چه د خپې خوږيدل هم د څه نه څه گناه په وجه وی حالانکه د الله ﷻ ډيرې معاف شوی گناهونه هم داسې لاړې شی. هم په ابن ابی حاتم کښې دی چه کله حضرت عمران بن حصين په بدن کښې تکليف وو او خلق د هغه عيادت له لاړل نو حضرت حسن اووې چه ستاسو دا حالت خو د کتو نه دې مونږ. ته ډيره صدمه اوشوه هغه اوفرمائيل داسې مه کوه دا چه تاسو څه وينئ دا ټول د گناهونو کفاره ده او ډيرگناهونه خو الله ﷻ معاف کړې دی بيا ئې ددې آيت تلاوت اوفرمائيلو(۳).

ابو البلادوائ چه ما حضرت علاء بن بدر ته اووې چه په قرآن کښې خو دا آيت دې او زه لا نابالغه يم او روند شوې يم.هغوئ اوفرمائيل د ستا د موراو پلارد گناهونو بدله ده.حضرت ضحاك فرمائی چه قرآن ويلونه پس هيرولو والا به يقينا په خپله گناه کښې نيولې شوې وی.د دې څه بله وجه نشته دې . بيا هغوئ ددې آيت تلاوت اوکړو او وې فرمائيل اووائ ددې نه لوې مصيبت به څه وی چه انسان د يادولو نه پس کلام الله هير کړی .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | وَمِنْ اٰيٰتِهِ | الْجَوَارِ |
| او دنښو دقدرت دهغه نه \| کشتئ (جهازونه) دی | | | | |
| او دهغه په نښو کښې (يوه نښه ستاسو) \| ............ | | | | |
| فِي الْبَحْرِ | كَالْاَعْلَامِ | اِنْ يَّشَاْ | يُسْكِنِ الرِّيْحَ | فَيَظْلَلْنَ |
| په درياب کښې \| پشان دغرونو \| که اوغواړی هغه \| نو اوبه دروی هوا \| پس شی به هغه کشتئ | | | | |
| جهازونه دی اچې دغرونو په شان په سمندر کښې روان دی \| که هغه اوغواړی\| نو بادونه بۀ اودروی انو | | | | |
| رَوَاكِدَ | عَلٰى ظَهْرِهٖ | اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ | لَاٰيٰتٍ | لِّكُلِّ صَبَّارٍ |
| ولاړې \| په شا دهغې (درياب) \| بيشکه په دې کار کښې \| خامخا نښې دی \| دپاره دهر صبر کونکی | | | | |
| سمندر به په څائې ولاړپاتې شی\| په دې کښې دهرصابر شکرگذار بنده دپاره | | | | |
| شَكُوْرٍ | اَوْ يُوْبِقْهُنَّ | بِمَا | كَسَبُوْا | |
| شکرايستونکی \| يا هلاکې (ډوبې) کړی دغه کشتئ \| په سبب دهغه بدعمل چې کړې وی هغوئ \| | | | | |
| نښې پرتې دی \| يا (که اوغواړی نو) ددوئ دعملونو په سبب به دغه جهازونه | | | | |

(۱) احمد:۴/۹۸ وسنده حسن .
(۲) احمد:۶/۱۵۷، البزار: ۳۲۶۰.
(۳) حاکم:۲/۴۴۵.

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَيَعْفُ | عَنْ كَثِيرٍ | وَيَعْلَمَ الَّذِينَ | يُجَادِلُونَ |
| او معافي كوي \| | دډيرو گناهونو \| | او چې پته اولږي هغه كسانو ته \| | چې جګړې كوي \| |
| تباه كړي\| اوډيرو ته بيا هم معافي كوي \|اودې دپاره چې كوم خلق زمونږ په آيتونو كښې | | | |

| | | |
|---|---|---|
| فِي آيَاتِنَا | مَا لَهُم | مِّن مَّحِيصٍ |
| په آيتونو زمونږ كښي \| | چه نشته هغوئ لره \| | هيڅ خائ دپناه \| |
| جګړې كوي هغوي په دې پوهه شي چې هيڅ خلاصې ورله نشته \| | | |

**قوله تعالى: وَمِنْ آيَاتِهِ الْجَوَارِ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ**

**په دريابونو كښي دكشتو آمدورفت**: الله ﷻ دخپل قدرت نښي دخپل مخلوق مخښې ته ايږدي چه هغه سمندرونه مسخر كړي دي دپاره ددې چه كشتي په كښې برابرې خې راخي. لوې لوې كشتې په سمندر كښې داسې معلوميږي لکه په زمکه اوچت غرونه.دا كشتې د اخواديخوا بوتلو والا هواګانې دهغه په قبضه كښې دى كه هغه اوغواړي نوداهواګانې به بندې كړي نو بيا خو به بادبانونه بيكاره شي او كشتې به اودريږي.هرهغه كس چه په سختو كښې دصبر او په آسانو كښې دشكرعادى وى نو هغه دپاره خوډيرد عبرت خائې دې هغه رب لوې قدرت او لوې سلطنت د هغه د.دې نښو نه پيژندې شي او څنګه چه هواګانې بندول او اودرول د هغه په لاس كښې دى دغه شان د ا د غرونو په شان لوې كشتي په يو ساعت كښې ډبول هم د هغه په لاس كښې دى .كه هغه اوغواړى نو د كشتې والو دګناهونو په وجه به هغوئ غرق كړي،اوس خو هغه د ډيرو ګناهونونه درګزركوي.او كه په ټولو ګناهونو ئې اونيول نو چه څوك هم كه په كشتئ كښې كيناستل نيغ به په سمندر كښې ډوب شي خو دهغه د حد نه زيات رحمت هغوئ يوطرف نه بل طرف ته بوزي.د تفسير علماء دا هم فرمائ كه هغه اوغواړى نوهم دا هوا به نا موافقه كړي اوډيره تيزه سيلئ به اوچلوي چه كشتې به په نيغه لاره نه خې اخوا ديخوا به شي او نه به سنباليږي اوكوم خوا چه تلل غواړي لاړه به نه شي اودغه شان حيرانه پريشانه بـه كشتې والا تباه شي.

غرض داچه كه بند ئې كړي نو په ولاړه ولاړه به ناكام شي او كه تيزه ئې كړي نو هم ناكاره .خو دا صرف دهغه لطف وكرم دې چه خوشګوارموافق هواګانې چلوي او لوې لوې سفرونه ددې كشتو په وجه خلق كوي اوخپل مقصدونه پوره كوي.هم داحال د اوبو دې كه چرې بالكل نه وروى خشك سالى شي نو دنيابه تباه شي اوكه ډير زيات اووروى نو ترسالى به يو څيزهم پيدا كيدو ته پرېږ نه دى او ټوله دنيا به هلاكه شي.ورسره ورسره د باران د زيات والى په وجه د كورونو دغورزيدلو اودپوره بربادئ سبب به جورشي.تردې پورې چه د الله په مهر بانئ سره چه په كوم كوم ښارونو او زمكو باندې زيات باران پكار دې هلته زيات باران كيږي او چه چرته كم پكار وى هلته كم .

بيا فرمائ چه زمونږ په نښو كښې جګړو والا په داسې موقعو باندې خو منى چه هغوئ زمونږ د قدرت نه بهر نه دى كه مونږ چرې انتقام اخستل اوغواړو مونږ عذاب وركول اوغواړو نو هغئ بچ كيدې نه شي ټول زمونږ د قدرت او خوښې لاندې دى.

| | |
|---|---|
| فَمَا أُوتِيتُم | |
| \| پس هغه چې دركړې شوې دې تاسو ته | |
| \| غرض دا چې څه تاسو ته | |

مِّنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ
څه څيز | پس هغه سامان دي | دژوند ددنيا | او هغه چي دالله سره دی | هغه بهتر دی |
درکړي شي هغه تش ددنيا ساز وسامان دي او الله ﷻ سره چي كوم نعمتونه دی هغه غوره او باقي پاتي كيدونكي

وَّاَبْقٰى لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ
او باقي پاتي كيدونكي دی | دپاره دهغه کسانو | چي ايمان ني راوړي وی | او په رب خپل باندي |
نعمتونه دی | هغه نعمتونه دهغه چا دپاره دی | چي ايمان راوړی او په خپل رب

يَتَوَكَّلُوْنَ ۚ وَالَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ
بروسه کوی | او دپاره دهغه کسانو | چي خان ساتي هغوئ | دغتو گناهونو نه |
باندي بهروسه کوی | اوڅوک چي د لويو لويو گناهونو او دبي شرمئ د خبرونه

وَالْفَوَاحِشَ وَاِذَا مَا غَضِبُوْا هُمْ يَغْفِرُوْنَ ۚ
او دبي حيايئ دكارونو نه | او هر كله چي | غصه شي هغوئ | نو هغوئ معاف كول كوی |
خان بچ ساتی | اوكله چي هغوئ غصه شي نو معافي كوی

وَالَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ ۠ وَاَمْرُهُمْ
او دپاره دهغه کسانو | چي حكم مني | درب خپل | او قائيموی مونځ | اوكار(معاملات) دهغوئ
او څوک چي دخپل رب حكم مني | اودمونځ پابندی كوی | اوهركار پخپلو كنبي

شُوْرٰى بَيْنَهُمْ ۠ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ
په مشوره سره وی | په منځ دهغوئ كنبي | او څيني دهغه رزق نه | چي وركړي دي مونږ هغوئ ته |
په مشوري سره كوی | اومونږ چي څه وركړي دی دهغي نه (دالله په لار كنبي) خرڅ

يُنْفِقُوْنَ ۚ وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ
خرچ کوی | او دپاره دهغه کسانو | كله چي | اورسي هغوئ ته | ظلم زياتي | نو هغوئ |
کوی | اوداسي خلق چي ظلم زياتي پري اوكړي شي نوپه برابر بدله اخلی (ظلم نه كوی)

يَنْتَصِرُوْنَ ۞
مقابله كوی دهغي |

**قوله تعالى:: فَمَآ اُوْتِيْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ**

**دنيا مذمت:** الله ﷻ ددنيا بي قدري او ددي دحقارت بيان اوفرمائيلو چه ددي جمع كولو سره چا له پرسيدل نه دی پكار خكه چه دايو ختميدونكي څيز دي بلكه د آخرت طرف ته رغبت پكاردی په نيكو اعمالو سره ثواب جمع كول پكار دی چه هميشه او باقي پاتي كيدونكي څيز دی . پس باقي له په فاني باندي اوكم له زيات باندي ترجيح وركول عقلمندی نه ده . اوس ددي ثواب د حاصلولو طريقي خودلي شي چه ايمان مضبوط وی چه دنياوی مزي پريخودو باندي صبر آسان وی په الله ﷻ كامل بهروسه وی چه په صبر باندي دهغه امداد ملاوشی او دالله ﷻ احكام پوره كول اود نافرمانو نه بچ كيدل آسان شی. لويوګناهونونه او فحش كارونو نه پرهيز پكاردي ددي جملي تفسير په سوره اعراف كنبي تيرشوي.

دي . په غصه قابو موندل پکار دی چه عین دغصې اودغضب حالت کښې هم دښه اخلاقو اودمعافۍ عادت پرې نه دی خکه چه په صحیح حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ چرې هم دخپل نفس بدله د چا نه نه ده اخستې.او که دالله ﷻ د احکامو بې عزتی او بې ادبی کیدی نو هغه بله خبره ده(۱)او په حدیث کښې دی چه ډیرې زیاتې غصې په حالت کښې هم د رسول الله ﷺ په ژبه مبارك ددې نه سوا نور الفاظ نه وتل چه فرمائیل به ئې چه ده ته څه شوي دی . دده لاسونه دې د خورو ډك شی(۲)حضرت ابراهیم فرمائی چه د مسلمان ذلیله کیدل خو به ئې نه ښوخول خو که غالب به شو نو انتقام به ئې نه اخستلو اومعاف به ئې کړو.د دوئ بل صفت دا دې چه دوئ د الله ﷻ حکم منی اودرسول ﷺ اتباع کوی د څه چه هغه حکم کوی دوئې هغه پوره کوی د څه نه چه هغه منع کوی د هغې نه منع کیږی.دمونځ پابندی کوی چه د ټولو نه اعلی عبادت دې .

**اهل علم سره مشوره کول** :په لوئ لوئ کارونو به ئې بغیر خپلو کښې دمشورې نه نه شروع کولو پخپله رسول الله ﷺ ته د الله حکم کیږی چه ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾(۴)یعنی دوی سره مشوره کوه ددې وجې د حضور ﷺ عادت مبارکه وو چه دجهاد وغیره په موقع باندې به ئې خلقو سره مشوره کوله چه د دوی زړونه خوشاله شی او په دې بنیاد باندې حضرت عمر کله چه هغه زخمی کړې شو او د مرګ وخت ئې رانزدې شو شپږ کسان مقرر کړل چه دوئ دې په خپله مشوره څوك زما جانشین مقرر کړی ددې شپږو بزرګانو نومونه دادی عثمان ؓ ،علی ؓ، طلحه ؓ ، زبیر ؓ، سعد ؓ او عبد الرحمن بن عوف ؓ. پس ټولو په اتفاق رائې حضرت عثمان خپل امیر مقرر کړلو . بیا دهغوئ چه د هغوئ د پاره دآخرت تیاری او د هغه خائې ثوابونه دی یو بل وصف ئې بیان کړو چه چرته د احق الله ﷻ ادا کوی هلته دخلقو د حقونو په ادا کولو کښې کمی هم نه کوی .په خپل مال کښې دغریبانانو حصه هم ساتی او درجه په درجه دخپل طاقت مطابق هر چه سره ښه سلوك او احسان هم کوی.او دوی داسې بې همته او ذلیله هم نه وی چه ظالم دظلم نه نه منع کوی بلکه دومره طاقت خپل ځان کښې ساتی چه د ظالمانو نه انتقام واخلی او مظلوم ته د هغه د پنجې نه نجات ورکړی .

**قوله تعالی:: يَنْتَصِرُونَ**

لیکن که دخپل ښه سړی توب په وجه غالب راشی او بیا ئې پریږدی.لکه څنګه چه د الله نبی حضرت یوسف ؑ خپل رونړو باندې قابو اوموندو او وې فرمائیل چه څنې زه تاسو ته هیڅ بد رد نه وایم بلکه زما خواهش دې اودعا ده چه الله ﷻ د ې هم تاسو معاف کړی.او لکه څنګه چه رسول الله په حدیبیه کښې کړی وو چه اتیا کافرانو چه دغفلت موقعه ئې اوموندله او چپ چاپ د مسلمانانو په لښکر کښې رانوتل او او نیولې شول کله چه د نبی ﷺ په خدمت کښې پیش کړې شو نو هغوئ دې ټولو له معافی ورکړله او پرې ئې خودل.

او لکه چه څنګه رسول الله غورث بن حارث معاف کړلو . دا هغه کس وو چه د رسول الله ﷺ د خوب په حالت کښې ده درسول الله ﷺ په توره قبضه کړې وه کله چه هغوئ راپاسیدل او دې ئې اورټلو او توره دده د لاسه اوغورزیدله او نبی ﷺ توره راواخستله او هغه مجرم سر خکته کړې د رسول الله ﷺ مخښې ته اودریدو رسول الله ﷺ صحابه راووغوستل دامنظر ئې ورته هم اوخودلو او قصه بې هم ورته واوروله بیا ئې هغه معاف کړو او پرېښخودو(۳)دغه شان لبید بن اعصم چه کله په رسول الله ﷺ

---

(۱)صحیح بخاری کتاب المناقب صفة النبی ﷺ :۳۵۶۰. صحیح مسلم: ۲۳۲۷.

(۲)صحیح بخاری کتاب الادب باب لم یکن النبی ﷺ فاحشاولا متحشا:۶۰۳۱.

(۳) صحیح بخاری کتاب المغازی باب غزوات ذات الرقاع : ۴۱۳۵، صحیح مسلم:۸۴۳.

جادو اوکړو نو باوجود د علم او قدرته رسول الله ﷺ هغه معاف کړلو(¹)او دغه شان چه کومې يهودنړې ښځې رسول الله ته زهر ورکړي وو رسول الله ﷺ د هغې نه هم بدله وانه خستله.په هغې باندې د قابو موندلو او د علم باوجود رسول الله ﷺ دا لويه واقعه معمولي اوګڼړله.د دغې ښځې نوم زينب وو دا د مرحب يهودي خور وه چه په غزوه خيبر کښې دحضرت محمود بن سلمه په لاس قتل شوې وو.دې د چيلۍ د مخکنى پتون په غوښه کښې زهر ملاو کړي وو او پخپله نې رسول الله ﷺ ته راوړې وو پخپله پتون رسول الله ﷺ ته د زهرو خبر ورکړې وو هر کله چه رسول الله ﷺ هغه راوغوسته او تپوس نې ترې اوکړو نوهغې اقرار اوکړو او وجه نې دا بيان کړې وه که تاسو رښتنې نبي وې نو تاسو ته به نې هيڅ نقصان نه رسوو اوکه تاسو پخپله دعوى کښې دروغژن وې نو مونږ ته به تاسو نه آرام ملاو شوې وې د دې د معلوميدو او د هغې دجرم اقرار کولو باوجود د الله رسول هغه پريخودله او معاف نې کړله . اګر چه بيا هغه قتل کړې شوه (²) ځکه چه د دغې زهرو په خوړلو حضرت بشر بن براء ﷺ وفات اوشو نو قصاصادا يهودنړه ښځه قتل کړې شوه.نورهم دحضورﷺ داسې ډير واقعات دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَمَنْ | مِّثْلُهَا ۚ | سَيِّئَةٌ | سَيِّئَةٍ | وَجَزَٰٓؤُا۟ |
| پس چاچې | په مثل دهغې | بدى ده | دبدئ | او بدله |
| خوخوک چې | | | | اودبدئ بدله هم هغه شان په بدئ سره ورکول دي ...... |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا يُحِبُّ | إِنَّهُۥ | عَلَى ٱللَّهِ ۚ | فَأَجْرُهُۥ | وَأَصْلَحَ | عَفَا |
| نۀ خوښوى | بيشکه هغه | په الله باندې دي | پس اجر دهغې | او اصلاح نې اوکړه | معافي اوکړه |
| بيشکه الله تعالى ظالمان نه | | سره دي | نود هغه اجر دالله ﷻ | اواصلاح اوکړى | معافي اوکړى |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بَعْدَ ظُلْمِهِۦ | | وَلَمَنِ ٱنتَصَرَ | ٱلظَّٰلِمِينَ ⁽⁴⁰⁾ |
| روستو دظلم کيدونه په هغه باندې | | او خامخا هغه څوک چې بدل نې واغستو | ظالمان |
| اوچا چې د مظلوم کيدو نه پس دهغې | | | خوښوى ......... |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٱلسَّبِيلُ | إِنَّمَا | مِّن سَبِيلٍ ⁽⁴¹⁾ | مَا عَلَيْهِم | فَأُو۟لَٰٓئِكَ |
| لار دملامتيا | بيشکه | څه لار دملامتيا | نشته په هغوئ باندې | نو دغه کسان چې دى |
| ملامتيا خو بس په هغه چا راځى | | | نو په هغه کسانو هيڅ الزام ملامتيا نشته | هومره بدله واخسته |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فِى ٱلْأَرْضِ | وَيَبْغُونَ | يَظْلِمُونَ ٱلنَّاسَ | عَلَى ٱلَّذِينَ |
| په زمکه کښې | او زياتي کوى | چې ظلم کوى په خلقو باندې | په هغه کسانو باندې ده |
| اوناحقه په زمکه کښې فساد خوروى | | | چې په خلقو باندې زياتي کوى |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَمَن | عَذَابٌ أَلِيمٌ ⁽⁴²⁾ | لَهُم | أُو۟لَٰٓئِكَ | بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ۚ |
| او خامخا هغه څوک | عذاب دردناک | دهغوئ دپاره دي | دا کسان چې دى | په ناحقه سره |
| اوڅوک چې .................. | | | | داسې خلقو دپاره دردناک عذاب مقرر دي ....................... |

---

(¹) صحيح بخارى كتاب الطب باب السحر : ۵۷۶۳، صحيح مسلم:۲۱۸۹.
(²) صحيح بخارى كتاب الجزية باب اذا غدالمشركين بالمسلمين: ۳۱۶۹، ابوداود: ۴۵۱۰.

| | | | |
|---|---|---|---|
| صَبَرَ | وَغَفَرَ | إِنَّ ذَٰلِكَ | لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ |
| چې صبر ئې اوکړو | او معافي ئې اوکړه | بیشکه دا کار | خامخا دغوره کارونو نه دي |
| صبر اوکړي | اومعافي اوکړي | نودا ډیر د اوچتو کارونو څخه دي | اوکوم سري |

**قوله تعالى:: وَجَزَٰٓؤُا۟ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا**

**د چا تکلیف رسولو باندې بدله او معافي:** ارشاد دي چه د بدي بدله اخستل جائز دی . لکه چه ئې اوفرمائیل ﴿فَمَنِ اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ يو بل آیت کښې دی ﴿وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِ﴾ ددې ټولو آیتونو مطلب هم دا دې .خو افضلیت هم په دې کښې دې چه معاف دې کړی . لکه څنګه چه فرمان دی ﴿ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ ۚ فَمَن تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُ ﴾ یعنی د خاص ز خمونو هم بدله ده بیا څوك چه هغه معاف کړي نو هغه به هغه د پاره کفاره جوړه شی . دلته ئې هم اوفرمائیل چه څوك معاف کړی اوصلح صفائی اوکړی د هغه اجر په الله ﷻ دې . په حدیث کښې دی د درګزر کولو په وجه الله ﷻ د بنده عزت نور هم زیاتوی (۱) خو چه څوك په بدله کښې د اصل جرم زیات شی نو هغه د الله دشمن دې بیا به د بدې ابتدا د ده د طرف نه ګنړلې شی

**قوله تعالى:: وَلَمَنِ انتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِ**

**دظلم بدله اخستل جائز دی ::**بیا فرمائی چه په چا باندې ظلم اوشو هغه باندې په بدله اخستو کښې هیڅ ګناه نشته.ابن عون فرمائی زه ددې لفظ انتصر د تفسیرپه تکل کښې ووم چه ما ته علی بن زید بن جدعان دخپل مور ام محمد په روایت چه حضرت عائشې ﷺ له به ډیره تله راتله هغې بیان کړلو چه یو خل حضور ﷺ حضرت عائشې له تشریف هوړو دغه وخت حضرت زینب هلته موجود وه رسول الله ﷺ ته معلوم نه وه کله چه هغوئ عائشې ته لاس ورنزدې کړو نو هغې په اشارې سره اوښودل.دغه وخت حضور ﷺ خپل لاس روستو کړو.حضرت زینب حضرت عائشې ته بد رد شروع کړل دحضور ﷺ په منع کولوهم منع نه شوه نو حضور ﷺ حضرت عائشې ته اجازت ورکړو چه جواب ورکړه . بیا خو چه کم جواب هغې ورکړو نو حضرت زینب عاجزه شوه او نیغه حضرت علی ﷺ له لاړه او وې وئیل چه حضرت عائشه تاسو ته داسې داسې وانی اوداسې داسې کوی (۲).

دا ئې چه واوریدل حضرت فاطمه دحضور ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه . نبی ﷺ هغې ته اوفرمائیل د کعبې په رب قسم زه عائشې سره محبت کوم هغه خو هغه وخت واپس لاړه او حضرت علی ﷺ ته یې ټوله قصه واوروله بیا حضرت علی ﷺ راغې او نبی ﷺ سره یې خبرې اوشوې .

دا روایت په ابن جریر کښې دغه شان دی خو ددې راوی په خپل روایتونو کښې عموما منکر حدیثونه راوړی اودا روایت هم منکر دې. نسائی او په ابن ماجه کښې داشان دی چه حضرت زینب د غصې نه ډکه بغیر اطلاع د حضرت عائشې کور ته لاړله او حضور ﷺ ته یې د حضرت عائشې په باره کښې څه اووې بیاحضرت عائشې سره په جنګګ شوه خو حضرت عائشې خاموشی اختیار کړه.کله چه هغې اووې نو نبی ﷺ حضرت عائشې ته اوفرمائیل ته خپله بدله واخله.بیا خو چه حضرت عائشې کوم جوابونه ورکول شروع کړل هغې سره د حضرت زینب لارې اوچې شوې هیڅ جواب یې ورنکړې شو . او د حضور ﷺ د مخ مبارك نه هغه صدمه لرې شوه(۳)غرض مختصر دا چه مظلوم دې ظالم له جواب ورکړی او بدله دې ترې واخلی. په بزاز کښې دی چه د ظالم دپاره چا بد دعا اوکړه هغه بدله واخستله .

---

۱) ددې په شان روایت صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب استحباب العفو والتواضع : ۲۵۸۸ کښې دې .

۲) ابوداود کتاب الادب باب فی الانتصار :۴۷۹۸، .

۳) ابن ماجه کتاب النکاح باب حسن معاشرة النساء:۱۹۸۱، وهو حسن.. ۹۷/۶، الادب المفرد:۵۵۸.

هم دا حدیث په ترمذي کښې دې (۱) خو دديې په راوي کښې کلام دې
بيافرمائي چه حرج او ګناه په هغه خلقو ده چه په خلقو ظلم کوي اوپه زمکه بغير دڅه وجې شر او فساد خوروي. ځکه په صحيح حديث کښې دي دوه کسان چه يو بل ته بد رد وائي د هغې ټولو بوج شروع کولو والا باندې دې ترسو چه مظلوم د بدلې د حد نه ورتير نه شي (۲) داشان فساد يان به د قيامت په ورځ دردناك عذابونو کښې اخته کيږي. حضرت محمد بن واسع فرمائي زه مکې ته لاړم نو اومې ليدل چه په خندق باندې پل جوړ شوې دې زه لا هلته وم چه ګرفتار کړې شوم او امير بصره مروان بن مهلب له يې اورسولم هغه ما ته اووې ابو عبد الله ته څه غواړې ما ورته اووې دا چه که تا نه کيدې شي نو د بنو عدي د رور په شان جوړ شه. تپوس يې اوکړو دا څوك دې؟ ما اووې علاء بن زياد چه خپل يو دوست يې يو خل په څه کار باندې عامل جوړ کړو نوهغه ته يې او ليکل چه د حمد وصلوة نه پس چه که تا نه کيدېشي نو دا کوه چه ستا ملا د بوج نه خالي وي ستا خيټه دې د حرام نه بچ وي ستا لاسونه د مسلمانانو دويني اومال نه آلوده نه وي. کله چه ته دا کوې نوتاباندې به دهيڅ يو ګناه لاره پاتې نه شي. دا لاره خوهغه خلقو باندې ده چه په خلقو ظلم کوي او بغيردڅه وجې په زمکه کښې فساد خوروي. مروان اووې الله ته پته ده ده رشتيا اووې او دخير خواهي خبره يې اوکړه بنه اوس څه غواړې ؟ وې فرمائيل دا چه ته ما خپل کور ته اورسې. مروان اووې ډيره ښه ده. پس د ظلم اود ظلم والو دمذمت بيانولوسره د بدلې اجازت او اوس افضليت طرف ته رغبت ورکولو د پاره فرمائي چه څوك تکليف برداشت کړي او بدې معاف کړي ده ډير د بهادرۍ کار اوکړو چه په هغې باندې هغه د ډير ثواب او د پوره بدلې مستحق دې . د حضرت فضيل بن عياض فرمان دې چه تا ته يو کس د بل کس شکايت اوکړي نوهغه ته نصيحت اوکه چه روره دې معاف که په معافي کښې بهتري ده او دا دپرهيز ګارۍ ثبوت دې که چرې هغه اونه مني او دخپل زړه د کمزورۍ اظهار اوکړي نو بيا ورته ونيلې شي چه لاړ شه او بدله ترې واخله خو په دې صورت کښې چه داسې نه وي چه ته زيات شې ورنه موږ خو اوس هم دا وايو چه معاف يې کړه د ا درواز ه ډيره وسعت والا ده او د بدلې لاره ډيره تنګه ده . واوره معاف کولو والا خو په آرام خوب خوب کښې اوده شي او بدلې اخستو والا شپه ورځ په سوچ کښې وي او کړي ربې چه څه به کوم. په مسند احمد کښې دي چه يو کس حضرت ابو بکر ﷺ ته بد رد ونيل شروع کړل حضور ﷺ هم هلته تشريف فرما وو هغوئ مسکې شول حضرت صديق ﷺ خاموش وو خو چه کله هغه ډيرې کنځلې اوکړې نو هغوئ هم د بعضو جواب ورکړو په دې باندې حضور ﷺ خفه شو او دهلته نه لاړو. حضرت ابوبکر ﷺ دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض يې او کړو چه يا رسول الله ﷺ هغه ما ته بد رد ونيل او تاسو ناست وې اوريدل مو او کله چه ما دهغه يو دوو خبرو جواب ورکړو نو تاسو په نارضتيا سره پاسيدې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل واوره هر کله چه ته خاموش وې نو يوې فرښتې ستا د طرف نه جواب ورکولو کله چه تا په خپله جواب ورکړو نو فرښته اخوا شوه او شيطان مينځ کښې راغلو نو بيا دشيطان په موجودګۍ کښې زه څنګه پاتې کيدې شوم . بيا يې اوفرمائيل واوره ابو بکر ﷺ درې څيزونه بالکل برحق دي ① چا باندې چه څه ظلم اوشي او هغه يې معاف کړي ضرور به الله هغه له عزت ورکوي او د هغه مدد به کوي ② کوم کس چه د سلوك اود احسان درواز ه کولاو کړي او د صله رحمي په اراده خلقوله ورکوي الله ﷻ به ورله برکت ورکړي او زيات به ورکړي ③ او څوك چه د زياتوالي د پاره د سوال دروازه کولاو کړي ددې دپاره هغه خلقو نه غواړي الله ﷻ به هغه لره بې برکتي ورکړي

(۱) ترمذی کتاب الدعوات باب من دعا علی من ظلمه فقد انتصر: ۳۵۵۲..
(۲) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب النهي عن السباب : ۲۵۸۷، ابوداود:۴۸۹٤.

او په کمی کښې به ئې مبتلا ساتی.(۱) دا روایت په ابو داود کښې هم دې او د مضمون په اعتبار ډېر ښکلې حدیث دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ | فَمَا لَهٗ | مِنْ وَّلِيٍّ | مِّنْ بَعْدِهٖ ؕ | |
| او هغه څوك چې گمراهه كړې هغه لره الله | پس نشته هغه لره | څوك دوست كارساز | روستو دهغه نه | |

چې الله ﷻ ئې گمراه كړې | نو د هغهٔ نه پس د هغه دپاره بل هيڅوك كارساز نشته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ | لَمَّا رَاَوُا | الْعَذَابَ | يَقُوْلُوْنَ | هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ |
| او تهٔ به اووينې دا ظالمان | هر كله چې اووينى هغوئ | عذاب | چې وائى به | آيا شته واپس تلوته |

اوته به ظالمان اووينى كله چې هغوى عذاب اووينى | نو دا به وائى چې آيا (دنيا) ته د واپس

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِّنْ سَبِيْلٍ ۚ | وَتَرٰىهُمْ | يُعْرَضُوْنَ | عَلَيْهَا |
| څه لار | اوتهٔ به اووينې هغوئ | چې وړاند به كړې شى | په دغه وور باندې |

تلو هم څه صورت شته ؟| اوته به هغوى اووينې چه جهنم ته به وړاندې كولې شى

| | | | |
|---|---|---|---|
| خٰشِعِيْنَ | مِنَ الذُّلِّ | يَنْظُرُوْنَ | مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ ؕ |
| حال دا چې يريدونكى به وى | ادوجې دذلت نه | اوگورى به (دوزخ ته) | په كتلو پټو سره |

د ذلت په وجه به سر ټيټ ولاړ وى| .................. او پټ پټ به جهنم ته گورى

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقَالَ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْۤا | اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ | الَّذِيْنَ |
| اووانى به هغه كسان | چې ايمان ئې راوړې دې | بيشكه تاوانيان دى | هغه كسان |

اومومنان به وائى | چې حقيقت كښې هغه څوك تاوانيان شول| چې خپل خانونه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خَسِرُوْۤا | اَنْفُسَهُمْ | وَاَهْلِيْهِمْ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ | اَلَاۤ |
| چې په خساره كښې ئې واچول | خانونه خپل | او اهل خپل | په ورځ دقيامت | خبردار |

او خپل بال بچ ئې دقيامت په ورځ په تاوان كښې واچول| ...................ياد ساته!

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ | فِيْ عَذَابٍ مُّقِيْمٍ ۝ | وَمَا كَانَ لَهُمْ | مِّنْ اَوْلِيَآءَ |
| بيشكه ظالمان خلق | به په عذاب هميشه كښې وى | اونهٔ به وى هغوئ لره | څوك سرپرستان |

چې بيشكه ظالمان به هميشه په عذاب كښې پراته وى | اود هغوئ به دالله ﷻ نه

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَنْصُرُوْنَهُمْ | مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ | وَمَنْ | يُّضْلِلِ اللّٰهُ |
| چې امداد اوكړى دهغوئ | په مقابله دالله كښې | او هغه څوك | چې گمراهه ئې كړې الله |

سوا هيڅوك مددگار نه وى | چې دهغوئ مدد اوكړى | اوڅوك چې الله ﷻ گمراه كړى

| | |
|---|---|
| فَمَا لَهٗ | مِنْ سَبِيْلٍ ؕ ۝ |
| پس نشته هغه لره | څه لار د بچگيدو |

نوهغه دپاره (دهدايت) هيڅ لار نشته

۱) احمد: ۴۳۶/۲، ابوداود كتاب الادب باب في الانتصار: ۴۸۹۴، وهو حسن.

قوله تعالى: ﴿وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِن وَلِيٍّ مِّن بَعْدِهِ﴾

**الله ﷻ چې څوک گمراه کړي نو هغه څوک نشي په لار کولی** الله ﷻ بیان فرمائي چه هغه څه غواړي هغه کيږي هغه څوک منع کولی نه شي او څه چه نه غواړي هغه نه کيږي اونه هغه څوک کولي شي هغه چه چا ته اوغواړي نيغه لاره ورته ښائي هغه څوک گمراه کولي نه شي او چا نه چه هغه نيغه لاره ورکه کړي هغه ته څوک لار نه شي ښودلې.یو بل ځائې فرمان دې ﴿وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُ وَلِيًّا مُّرْشِدًا﴾ څوک چه هغه گمراه کړي دهغه څوک مدد گار اولار ښودونکې نشته .

قوله تعالى: ﴿وَتَرَى الظَّالِمِينَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ﴾

**وجهنم په ليدو د مشرکانو ارمان**: بیا فرمائي چه د ا مشرکان د قیامت عذابونه چه اوويني نو دوباره به دنيانه دراتلو ارمان کوی لکه چه بل ځائې دی ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ﴾ کاش چه تا هغوئ ليدلي وې چه دوزخ سره به اودرولې شي او افسوس به کوی چه څومره ښه به وه چه مونږه دوباره واپس ليږلې شوې وې نومونږ به هیڅ چرې دخپل رب آيتونه دروغ نه گڼرو بلکه ایمان به راوړو.حق خو دا ده چه کوم څيز دې خلقو پټ کړې ووهغه د دې مخکښې ته راغلو.خبره دا ده که دوئ دوباره هم اوليږلې شول نو بیا به هم هغه کوی د څه نه چه به منع کولې شو یقینا دا دروغژن دی.

قوله تعالى: ﴿وَتَرَاهُمْ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا﴾

**ظالمان به دوزخ سره حیرانه اوپریشانه وی**: بیا نې اوفرمائيل چه دوی به جهنم ته نزدې راوستلې شي اوداللہ ﷻ دنافرمانو په وجه به په دوی ذلت خور شوې وی دعاجزې نه تيټ وی اوغلې غوندې به دوزخ ته گوری خو چهس د څه نه يريږی د هغې نه به بچ نه شي.نه صرف دومره بلکه د هغوئ د وهم و گمان نه به هم زيات عذاب دوی ته ورکړې ورکيږی الله دې ترې مونږ محفوظ اوساتي . هغه وخت به ایمان والا خلق وائي چه حقيقي نقصان والا هغه خلق دی چا چه ځان سره خپل منونکې هم دوزخ ته بوتلل . چه نن د هميشنې نعمتونه نه محروم شول او هغوئ يې هم محروم کړل . نن به هغه ټول بيل بيل عذاب کښې مبتلا وی دائمي ابدی او هميشنې سزاگانې زغمي . او دوی به نا اميده وی نن به څوک هم دوئ ددې عذابونو نه خلاصولو والا یا کمولو والا نه وی دا گمراهان به خلاصولو والا څوک هم نه وی.

| |
|---|
| اِسْتَجِيبُوا لِرَبِّكُمْ مِّن قَبْلِ |
| \| قبوله کړئ بلنه \| درب خپل \| مخکښې ددې نه \| |
| تاسو دخپل رب د حکمونو قبولوالې کوئ اددې نه وړاندې |
| أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهُ مِنَ اللَّهِ ۚ مَا لَكُم |
| چې راشي \| هغه ورځ \| چې نشته واپس کيدل \| هغې لره \| دطرفه دالله نه \| نهٔ به وی تاسو لره \| |
| چې هغه ورځ راشي \| دالله ﷻ دطرف نه به دهغې واپس کيدل نه وی\| په هغه ورځ به ستاسو دپاره چرته |
| مِّن مَّلْجَإٍ يَوْمَئِذٍ وَمَا لَكُم مِّن نَّكِيرٍ ۝ فَإِنْ أَعْرَضُوا |
| هيڅ ځائ دپناه \| په دغه ورځ \| اونهٔ به وی تاسو لره \| هيڅ انکار \| اوس که چرې مخ واړوؤ دوئ |
| د پناه ځائې نه وی \| اونه به (دفيصلې منلونه) انکار کولې شئ \| که اوس هم دوئ (دقران نه) مخ واړوی |
| فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ۖ إِنْ عَلَيْكَ إِلَّا الْبَلَاغُ ۗ |
| پس نهٔ ئې ليږلې مونږ تهٔ \| په دوئ باندې \| په حيثيت دنگران \| نشته په تا باندې \| مگر رسونه \| |
| نو مونږ ته په دوئ څه نگران نه ئې مقرر کړې \| ستاسو په ذمه خو صرف پيغام رسول دی |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِنَّآ | إِذَآ | أَذَقْنَا | الْإِنْسَانَ | مِنَّا | رَحْمَةً | فَرِحَ | |
| او بیشکه مونږه | کله چې | اوڅکوو مونږه | انسان ته | دطرفه زمونږ نه | رحمت | نو خوشحاله شي | |
| اومونږ چې یو انسان باندې څه نعمت اوکړو \| نو هغه په هغې باندې ځان ته غاوره شي | | | | | | | |
| بِهَا ۚ | وَإِنْ تُصِبْهُمْ | سَيِّئَةٌ | بِمَا | قَدَّمَتْ | | | |
| په هغې سره | او که اورسیږي دوئ ته | څه مصیبت | په سبب دهغې عمل | چې مخکښې لیږلې وي | | | |
| ......... \| اوکه چرې خلقو ته د هغه ګناهونو په وجه کوم چې هغوی کړي وي څه تکلیف اورسیږي | | | | | | | |
| أَيْدِيهِمْ | فَإِنَّ الْإِنْسَانَ | كَفُورٌ ۝ | | | | | |
| لاسونو ددوئ | نو بیشکه انسان دې | ناشکره | | | | | |
| نو هم دغه انسان ناشکري شروع کړي \| | | | | | | | |

**قوله تعالى:: اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ**

**د دوزخ نه د بچکیدو تدبیر**:لکه څنګه چه اول ذکراوشو چه د قیامت په ورځ به لوې لوې هیبتناك واقعات وي هغه به سخته د مصیبت ورځ وي نو اوس دهغې نه یرولې شي او دهغې ورځې دتیارې د پاره فرمائي دهغه ورځې دراتلو نه مخکښې مخکښې دالله ﷻ په فرمان پوره پوره عمل اوکړې.کله چه هغه ورځ راشي نوتاسوته به نه د پناه څه ځائې ملاویږي او نه داسې ځائې چه هلته تاسو نانجانږه داسې پټ شئ چه نه مو څوك پیژني او نه مو څوك اووینې .

**قوله تعالى:: فَإِنْ أَعْرَضُوا فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ۖ**

**د نبي کریم ﷺ په ذمه صرف رسونه ده**::بیا فرمائي که دامشرکان نه مني نو ته په ذوی باندې نګران نه یې جوړشوې هغوئ په هدایت باندې راوستل ستاپه ذمه نه دي داکاردالله ﷻ دې تاباندې صرف تبلیغ دې حساب به مونږ پخپله اخلو.د انسان حالت دادې چه په راحت کښې په مستې کښې شي او په تکلیف کښې ناشکره شي هغه وخت مخکښني نعمتونو نه هم منکر شي.په حدیث کښې دي چه حضورﷺ ښځو ته اوفرمائیل چه صدقه ورکوئ ما تاسو په دوزخ کښې په زیات تعداد کښې لیدلې یئ چا تپوس اوکه دا په څه وجه ؟ نبيﷺ اوفرمائیل چه ستاسو د شکایت د زیاتي او د خاوندانو د ناشکرې په وجه .که چرې ته دوی سره یوې زمانې پورې د احسان معامله اوکې او بیا یو ورځ پریږدې نو دا ښځې وائي چه ما خو تا نه چرې هم څه راحت او آرام نه دې موندلی(١) په حقیقت کښې د اکثرو ښځو دا حال دې خو چه په چا باندې الله رحم اوکړي او د نیکې توفیق ورکړي او حقیقي ایمان ورته نصیب کړي بیا خو د هغه دا حال وي چه هر راحت باندې شکر او هر تکلیف باندې صبر . پس په هر حالت کښې نیکي حاصلیږي او د وصف سوا د مومنانو نه بل چا کښې نه وي .

| | | |
|---|---|---|
| لِلّٰهِ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ ۗ |
| الله لره ده | بادشاهي داسمانونو | او دزمکې |
| داسمانونو اودزمکې بادشاهي صرف دالله ﷻ ده | | |

(١) صحیح بخاری کتاب النکاح باب کفران العشیر:۵۱۹۷ صحیح مسلم:۷۹.

يَخۡلُقُ مَا يَشَآءُ ۚ يَهَبُ لِمَنۡ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ

پیدا کوی هغه | هغه | چې غواړي | ورکوي | چاله چې غواړي | لونړه | او ورکوي |

هغه چې څه اوغواړي نو پیدا کوي ئې | چې چاته اوغواړي لونړه ورکړي | او چا ته چې اوغواړي نو

لِمَنۡ يَّشَآءُ الذُّكُوۡرَ ۝ اَوۡ يُزَوِّجُهُمۡ ذُكۡرَانًا وَّاِنَاثًا ۚ وَيَجۡعَلُ

چاله چې غواړي | خامن | یا ورکوي هغوئ ته | خامن | او لونړه ګډوډ | اوګرزوي |

خامن ورته ورکړي | اویا ورته خامن اولونړه دواړه ورکړي | او چې چاته اوغواړي نو

مَنۡ يَّشَآءُ عَقِيۡمًا ؕ اِنَّهٗ عَلِيۡمٌ قَدِيۡرٌ ۝ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ

هغه څوک چې غواړي | شنډ | بیشکه هغه | عالم دي | قادر دي | اونۀ دي دا مقام | د یوبشر |

شنډ ئې کړي | هغه په هر څۀ پوهه دي | او په هرڅه قادر دي | .......اود هيڅ بشر دا قدرت نشته

اَنۡ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحۡيًا اَوۡ مِنۡ وَّرَآئِ حِجَابٍ اَوۡ يُرۡسِلَ

چې خبرې اوکړي دهغه سره الله | مګر په وحی سره | یا شاته دپردې نه | یا رالیږي هغه |

چې الله تعالى دې ورسره خبرې اوکړي| البته دا چې وحي ورته اوکړي| یا ورسره د پردې نه اخوا خبرې اوکړي

رَسُوۡلًا فَيُوۡحِىَ بِاِذۡنِهٖ مَا يَشَآءُ ؕ اِنَّهٗ

پیغام رسانه فرښته | پس هغه وحي کوي | په حکم دهغه سره | هغه چې غواړي هغه | بیشکه هغه |

یا یوه فرښته راولیږي| نوهغه ورته دالله ﷻ په حکم هغه وحي راوړي کومه چې دالله ﷻ خوښه وي

عَلِىٌّ حَكِيۡمٌ ۝ وَكَذٰلِكَ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡكَ رُوۡحًا

اوچت دي | دحکمت خاوند دي | او همدارنګې | وحی کړې دې مونږه | تاته | یو ورح |

الله ﷻ ډیر اوچت دې صاحب دحکمت دې |اودغسې مونږ تاته دا وحي یعنی خپل حکم

مِّنۡ اَمۡرِنَا ؕ مَا كُنۡتَ تَدۡرِىۡ مَا الۡكِتٰبُ وَلَا الۡاِيۡمَانُ

دحکم خپل نه | نۀ وې تۀ | چې پوهیدلې | چې څه څیز دی کتاب | اونۀ ایمان |

درلیږلې دې | تا خو نه پیژندل چې کتاب څه څیز دې اونه دې ایمان پیژندل چې ایمان څه څیزدې

وَلٰكِنۡ جَعَلۡنٰهُ نُوۡرًا نَّهۡدِىۡ بِهٖ مَنۡ

ولیکن | جوړ کړو مونږه دغه روح | یوه رڼړا | چې لار ښایو مونږ | په هغې سره | هغه چاته

لیکن مونږ دا (کتاب) رڼړا جوړه کړه| او د دې په ذریعه مونږ پخپلو بندګانو کښې

نَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِنَا ؕ وَاِنَّكَ لَتَهۡدِىۡۤ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ۝

چې غواړو مونږ |دبندګانوز مونږه |اوبیشکه تۀ |خامخا هدایت کوې | لارې | نیغې ته |

چاته چې اوغواړونو هدایت کوو| او ته نیغې لارې طرفته خودنه کوې

| | | | |
|---|---|---|---|
| صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِیْ | لَهٗ | مَا فِی السَّمٰوٰتِ | وَمَا |
| لاره دهغه الله | چی هغه لره دی | هغه څه چی په آسمانونو کښی دی | او هغه څه |
| (یعنی) دهغه الله ﷻ لاره چې داسمانونو او زمکې د ټولو شیزونو مالک دی | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِی الْاَرْضِ ط | اَلَآ | اِلَی اللّٰهِ | تَصِیْرُ | الْاُمُوْرُ ﴿۵۳﴾ |
| چی په زمکه کښی دی | خبردار شئ | چی خاص الله ته | واپس ورخی | ټول معاملات |
| یاد ساتئ چې ټولې معاملې (جګړې او مقدمې) به الله ﷻ ته پیش کیږی (اوهغه به ئې فیصله کوی) | | | | |

**قوله تعالی:: لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط**

**هر قسمه پیدائش د الله په اختیار کښې دې**.فرمانې چه خالق مالك او متصرف د زمکې اود آسمان صرف یو الله ﷻ دې هغه چه څه غواړی هغه کیږی چه څه نه غواړی هغه نه کیږی چا ته چه اوغواړی ورکوی اوچا ته چه اوغواړی نه ورکوی چه څه اوغواړی پیدا یې کړی اوجوړ یې کړی چا ته چه اوغواړی صرف جینکې ورکوی لکه حضرت لوط ﷺ ته او چا ته چه اوغواړی صرف هلکان ورکوی لکه حضرت ابراهیم ﷺ ته او چا ته چه اوغواړی هلکان اوجینکې دواړه ورکوی لکه حضرت محمد ﷺ او څوك چه اوغواړی لاولد یې ساتی لکه حضرت یحیی او حضرت عیسی علیهما السلام .

**دمخلقو څلور قسمه پیدائش**:بس دا څلور قسمه شو جینکو والا هلکانو والا دواړو والا او د دواړو نه خالی. هغه علیم دې هرمستحق پیژنی.قادر دې څنګه چه غواړی فرق ساتی.بس دا مقام دالله ﷻ د هغه فرمان په مثل دې کوم چه دحضرت عیسی ﷺ په باره کښې دې چه ددې وجې مونږ هغه دخلقو دپاره نمونه جوړکو یعنی دقدرت دلیل ئې جوړکو اواوښایو چه مونږ مخلوق په څلورقسمه جوړ کړېدې . حضرت آدم ﷺ صرف د خاورې نه پیدا شو نه مور نه پلار.حضرت حوا صرف د نارینه نه پیدا شو. باقی ټول انسانان د سړی اوښځې نه سوا دحضرت عیسی ﷺ نه چه صرف هغه د ښځې نه بغیر د سړی نه پیدا شوه . پس د رسول الله ﷺ په پیدائش دا څلور وانړه قسمونه پوره شو لهذا دا مقام د مور پلار په باره کښې وواو هغه مقام د اولاد په باره کښې ددې هم څلور قسمه او دهغې هم څلور قسمه . سبحان الله دا دې د هغه الله د علم او د قدرت نښې .

**قوله تعالی:: اِلَّا وَحْیًا**

**د وحی مختلف صورتونه** :د وحی د مقامات،مراتب او کیفیاتو باره کښې بیان دې چه کله خو به د رسول الله ﷺ په زړه کښې وحی واچولې شوه چه د هغې په وحی الهی کښې به هغوئ ته هیڅ شك نه وو لکه چه د صحیح ابن حبان په حدیث کښې دی چه روح القدس زما په زړه کښې دا خبره راپوکلې ده چه هیڅ یو کس هم ترسو چه خپل رزق او وخت پورا نه کړی هیڅ چرې نه مری.ددې وجې د الله نه یریږی او د رزق په طلب کښې ښه لاره اختیاروئ([1])یاپردې په شا لکه چه حضرت موسی ﷺ سره کلام اوشو خکه چه هغوئ کلام واوریدو نو جمال کتل یې اوغوښتل خو الله رب العزت په پرده کښې وو.رسول الله ﷺ حضرت جابربن عبد الله ﷺ ته فرمائیلې وو چه الله ﷻ چاسره هم کلام نه دې کړې خود پردې شاته خو ستا پلارسره یې مخامخ کلام کړې دې ([2])دې احد په غزا کښې د کافرانو په لاس شهید شوې وو.خو دا دیادساتلوخبره ده چه دا کلام د عالم برزخ دې اوچه دکوم کلام ذکردې د هغې نه ددنیا کلام مراددې .

---

[1] )حاکم :۲/۴ لم اجده عند ابن حبان ورواه البغوی فی شرح السنة: : ۴۱۱۲، والقضاعی فی مسند الشهاب: ۱۱۵۱.

[2] ) ترمذی کتاب تفسیر القران باب و من سورة آل عمران : ۳۰۱۰، وسنده حسن ابن ماجه: ۱۹۰.

یاقاصد راولیږي اوخپله خبره هغه ته اورسوی لکه حضرت جبرئیل ﷺ وغیره فرښتې به د الله نبیانو له راتللې.هغه بلندې او بزرګې والا دې ورسره حکیم او حکمت والا هم دې.د روح نه مراد قرآن دې فرمانی چه دا قرآن مونږه ستا طرف ته د وحی په ذریعه رالیږلې دې.کتاب او ایمان تفصیل سره چه کوم مونږ په کتاب کښې کړې دې ته ددې نه مخکښې نه پوهیدې خو مونږه د قرآن نور جوړ کړې دې چه ددې په ذریعه مونږ خپل ایمان والا بندګانو ته نیغه لاره ښایو لکه چه بل آیت کښې دی ﴿قل للذین امنوا ﴾ الخ اووایه چه دا د ایمان والو د پاره هدایت او شفا ده. او د بې ایمانو غوږونه کانږه او سترګې ړندې دی . بیا فرمانی چه اې نبی ﷺ ا ته د الله لارې او حق طرف ته رهنمائی کوه او بیا نې د صراط مستقیم تشریح اوکړه او وې فرمانیل د شرع مقررولو والا پخپله الله ﷻ دې چه دهغه شان دادې چه داسمانونو اود زمکو مالك دې اوالله ﷻ هغه دې په دې کښې تصرف کولو والا او حکم چلولو والا هم هغه دې څوك هم د هغه یو حکم منع کولې نه شی.ټول کارونه هم هغه طرف ته واپس کیږی هم هغه د ټولوکارونو فیصلې کوی او حکم کوی.هغه پاك او برتردې هر هغه څیز نه چه د هغه نسبت دا ظالمان اومنکران وائی . هغه اوچت او بلندې والا دې .

| آیاتونه | سورة الزخرف مكية وهي تسع وثمانون اٰية وسبع ركوات | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۸۹ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ۷ |

حٰمٓ ۝۱ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝۲ اِنَّا جَعَلْنٰهُ قُرْءٰنًا

ح م | قسم دې په کتاب | واضحه باندې | بیشکه مونږه | جوړ کړې دې دا کتاب | قرآن |

حم په دې واضحه کتاب باندې قسم دې | مونږ دا د عربئ ژبې قران(په دې غرض جوړ کړې دې

عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝۳ وَاِنَّهٗ فِيْٓ اُمِّ الْكِتٰبِ

دعربئ ژبې | دپاره ددې چې تاسو | پوهه شئ | او بیشکه دا قران | په اصل دکتاب کښې |

چې تاسو پرې پوهه شئ |او بیشکه دا قران پاك مونږ سره په لوح محفوظ کښې موجود دې

لَدَيْنَا لَعَلِيٌّ حَكِيْمٌ ۝۴ اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ

زمونږ سره | داوچتې مرتبې | او دحکمت نه ډك کتاب دې | ایا پس مونږه اوګرځوو | ستاسو نه |

داوچتې مرتبې کتاب دې او حکمت نه ډک دې | ایا مونږ به ستاسو نه دا د نصیحت (کتاب)

الذِّكْرَ صَفْحًا اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِيْنَ ۝۵

دا نصیحت | په ګرځولو سره | صرف په دې وجه چې یئ تاسو | یو قوم | دحد نه اوړیدونکی |

د دې وجې واړوو | چې تاسو داسې خلق یې چه د مناسب حد نه تیریدونکی یئ

وَكَمْ اَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِيٍّ فِي الْاَوَّلِيْنَ ۝۶ وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ نَّبِيٍّ

او ډیر لیږلی دی مونږه | پیغمبران | په مخکینو خلقو کښې | اونۀ به راتلو هغوئ ته | یو پیغمبر |

اومونږ پخوانو خلقو ته څومره ډیر پیغمبران لیږلی وو ؟ | او دغې خلقو ته یو پیغمبر هم داسې نه وو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | كَانُوا | بِهِ | يَسْتَهْزِءُونَ ۝ | فَأَهْلَكْنَا |
| مګر | وو هغوئ | چې په هغه پورې به ئې | توقې | کولې / پس هلاک کړل مونږه هغه خلق |
| راغلي چې هغوئ ورپورې تږقي نه وې کړې/ نو مونږ هغه تول خلق هلاک کړل/ کوم چې | | | | |
| أَشَدَّ | مِنْهُمْ | بَطْشًا | وَمَضَىٰ | مَثَلُ الْأَوَّلِينَ ۝ |
| چې زيات سخت وو | ددوئ نه | په قوت کښې | او تير شوی دی | مثالونه دمخکينو خلقو |
| ددې خلقو نه طاقتور وو/ اودغه شان سلوک د پخوانو ډيرو خلقو سره شوې دې | | | | |

قوله تعالیٰ:: وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝

**د قرآن نورانيت اوعظمت**: د قرآن قسم يې اوخوړلوچه واضح دې اوددې معنې ښکاره دی چه الفاظ يې نوراني دی چه د ټولو نه زياته فصيح اوبليغ ژبه عربې کښې نازل شوې دې دا ددې د پاره چه خلق سوچ اوکړي اونصيحت او عبرت حاصل کړي.مونږ دا قرآ ن په عربې ژبه کښې نازل کړې دې .

ځنګه چه بل ځاې کښې دی عربي واضح ژبه کښې مو دا نازل کړې دی.ددې شرافت او لويه مرتبه کومه چه عالم بالا کښې ده هغه بيان فرمائي چه زمکې والو ته د هغه منزلت او قدر معلوم شي . وې فرمائيل چه دا په لوح محفوظ کښې ليکلې شوې دې . لدينا نه مراد مونږ سره د لعلي نه مراد مرتبې والا عزت والا شرافت او فضيلت والا دې د حکيم نه مراد محکم او مضبوط چه د باطل د ملاويدو نه اوناحق سره د خلط ملط کيدو نه پاک دې يو بل آيت کښې د دې کلام پاک د بزرګي بيان په دې الفاظو سره دې﴿انه لقران کريم﴾ يو بل ځاې دی﴿كَلَّا إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ﴾ يعنی دقرآن کريم په لوح محفوظ کښې درج دې دې ته سوا د پاک فرښتو نه څوک لاس هم نه شي لګولې.دا درب العالمين د طرف نه نازل شوې دې.

او وې فرمائيل چه قرآن د نصيحت څيز دې د چا چه زړه غواړي قبول دې کړي . هغه په داسې صحيفو کښې دې چه معززې دی او اوچت درجې والا دی او مقدس دی چه د داسې ليکلو والا په لاس کښې دی چه عزت والا او پاکې دی.د دې دواړو آيتونو نه علماء استنباط کړېدې چه بې اودسه قرآن له لاس اوړل نه دی پکار لکه ځنګه چه په يو حديث کښې هم راغلي دی (¹) په شرط ددې چه هغه صحيح ثابت شي . څکه چه په عالم بالا کښې فرښتې د دې کتاب ډير عزت او تعظيم کوی په څه کښې چه دا قرآن ليکلې شوې دې د دې وجې په دې عالم کښې مونږ له بدرجه اولی د دې قرآن ډير عزت او اکرام پکار دې څکه چه دا زمکې والو د پاره رالیږلې شوې دې او د دې خطاب هم دوی ته دی نو دوی له د قرآن ډير زيات ادب او تعظيم پکار دې او ورسره ورسره د دې احکام منل او په هغې عامل جوړېدل پکار دی.څکه چه دالله ﷻ فرمان دې چه دا مونږ سره په ام الکتاب کښې دې او ډير اوچت او حکمت والا دې.ددې نه پس د آيت څو يو معنی دا شوې ده آيا تاسو د ګڼړلې ده چه د اطاعت او فرمان بردارې نه کولو باوجود به مونږه تاسو پرېږدو او تاسو ته به عذاب نه درکوو .

دويمه معنی داده چه ددې امت مخښکنو خلقو کله چه قرآن دروغ اوګڼړل که هغه وخت دا قرآن اوچت کړې شوې وې نو ټوله دنيا به هلاک کړې شوې وه.څو د الله ﷻ وسيع رحمت دا خوښه نه کړله او برابر د شلو کالو نه زياته مودې پورې دا قرآن نازليدلو.ددې قول مطلب دادې چه داد الله ﷻ لطف او رحمت دې چه هغه د نه منونکو د انکار اود بد باطن خلقو د شرارت په وجه هغوئ ته نصيحت او وعظ کول نه

---

¹) حديث لا يمس القران ، طرفته اشاره ده . داروايت موطا امام مالک :۱۹۹/۱. وهو حديث حسن کښې موجود دې .

پربږدی ددې وجې چه په دوی کښې چه کوم نیکې والا دی هغه درست شی او چه کوم درست کیږی نه په هغوئ باندې حجت تمام شی.

قوله تعالی: وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِن نَّبِيٍّ فِي الْأَوَّلِينَ۝

نبی کریم ﷺ ته تسلی: بیا الله تبارك و تعالی خپل نبی محمد ﷺ ته تسلی ورکوی او فرمائ چه ته د خپل قوم په تکذیب مه پریږه صبر او تسلی ساته د دوی نه مخکښې چه کوم قومونه وو هغوئ له هم مونږ رسولان او نبیان لیږلې وو او دوی ټولو خپل خپل نبیانو سره تمسخر کړې وو بیا مونږه هغوئ هلاك کړل.هغوئ ستاسو د زمانې والا خلقو نه زیات زور والا او طاقت والا وو.لکه چه په بل آیت کښې دی آیا هغوئ په زمکه باندې او نه ګرځیدل او وې نه لیدل ؟ چه د دوی نه د مخکښنو خلقو څه انجام اوشو؟ چه د دوی نه په تعداد او په طاقت کښې ډیر وراندې وو.د دې مضمون نور هم ډیر آیتونه دی. بیافرمائی چه د مخکښینو خلقو مثالونه تیر شول یعنی د هغوئ عادتونه سزاګانې اوعبرتونه.لکه چه د دې سورت په آخر کښې یې اوفرمائیل چه مونږ هغوئ تیر شوی خلق او د راتلونکو د پاره عبرت جوړ کړل . او لکه چه فرمان دې سُنَّةَ اللَّهِ الَّتِي یعنی د الله ﷻ طریقه چه د هغه په بندګانو کښې دمخکښې نه راروانه ده اوته به دا بدلیدو والا بیا نه مومې .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَئِن | سَأَلْتَهُم | مَّنْ | خَلَقَ | السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضَ |
| او که چرې | تپوس اوکړې ته ددوئ نه | چې چا | پیدا کړی دی | آسمانونه او زمکه |
| اووائې نبی ﷺ که ته د دوی نه تپوس اوکړې | چې آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی دی | | | |
| لَيَقُولُنَّ | خَلَقَهُنَّ | الْعَزِيزُ | الْعَلِيمُ۝ الَّذِي | جَعَلَ |
| نو خامخا به اووائی | چې پیدا کړی دی دا | غالب | او عالم الله هغه (الله) | چې جوړه ئې کړه |
| نودوئ به خامخا اووائی | چې دازبردست او پوهه الله ﷻ پیدا کړی دی | هغه الله ﷻ | | |
| لَكُمُ الْأَرْضَ | مَهْدًا | وَجَعَلَ | لَكُمْ | فِيهَا سُبُلًا |
| ستاسو دپاره زمکه | زانګو | او جوړ ئې کړې | ستاسو دپاره | په هغې کښې لارې |
| چې زمکه ئې فرش جوړه کړې ده | ..........او ستاسو دپاره یې په دې کښې لارې جوړې کړې دی | | | |
| لَعَلَّكُمْ | تَهْتَدُونَ۝ | وَالَّذِي | نَزَّلَ | مِنَ السَّمَاءِ |
| دپاره ددې چې تاسو | دخپل منزل لار بیا مومئ | او هغه (الله) | چې نازلې ئې کړې | داسمان نه |
| چې تاسو خپل منزل مقصود ته اورسیږئی | او الله ﷻ هغه ذات دې چې د پورته نه ئې په اندازه اوبه | | | |
| مَاءً | بِقَدَرٍ | فَأَنشَرْنَا | بِهِ | بَلْدَةً مَّيْتًا كَذَٰلِكَ |
| اوبه | په خاص مقدار سره | پس ژوندئ کړه مونږه | په دې سره | زمکه مړه همدارنګې به |
| راوورلې | ..........نو بیا مونږ په هغې سره مړه زمکه راژوندئ کړه | هم دغه شان به تاسو | | |
| تُخْرَجُونَ۝ | وَالَّذِي | خَلَقَ الْأَزْوَاجَ | كُلَّهَا | وَجَعَلَ |
| تاسو رااوویستې شئ | او هغه (الله) | چې پیدا ئې کړې جوړئ | ټولې | او جوړه ئې کړه |
| (دقبرونونه) راویستلې شئ | اوالله ﷻ هغه ذات دې | چې ټول څیزونه ئې جوړې پیدا کړی دی | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَكُمْ | مِّنَ الْفُلْكِ | وَالْأَنْعَامِ | مَا | تَرْكَبُوْنَ ﴿١٢﴾ | |
| ستاسو دپاره \| | دكشتئ نه \| | او دخناورو نه \| | هغه ذريعه \| | چې تاسو پر سورلی كوئ \| | |
| او ستاسو دپاره ئې بيړئ او څاروي پيدا كړي دي \| ...چې تاسو پرې سورلئ كوئ | | | | | |
| لِتَسْتَوٗا | عَلٰى ظُهُوْرِهٖ | ثُمَّ تَذْكُرُوْا | نِعْمَةَ رَبِّكُمْ | | |
| دپاره ددې چې تاسو برابر سواره شئ \| په شاگانو دهغې \| بيا تاسو ياد كړئ \| نعمت د رب ستاسو \| | | | | | |
| دپاره ددې چې تاسو دهغې په شا برابر كينئ\| او كله چې پرې سوارهٔ شئ انو دالله ﷻ نعمت ياد كړئ | | | | | |
| اِذَا اسْتَوَيْتُمْ | عَلَيْهِ | وَتَقُوْلُوْا | سُبْحٰنَ الَّذِيْ | سَخَّرَ | |
| كله چې برابر كينئ تاسو \| په هغې باندې \| او اووايئ \| پاك دې هغه ذات \| چې تابع ئې كړل \| | | | | | |
| اودا اووائي چې هغه ذات پاک دې \| چې داسې (لوئې لوئې) مخلوق ئې زمونږ تابع كړي دي | | | | | |
| لَنَا | هٰذَا | وَمَا كُنَّا | لَهٗ | مُقْرِنِيْنَ ﴿١٣﴾ | وَاِنَّآ | اِلٰى رَبِّنَا |
| دپاره زمونږه \| دا څيزونه \| اونهٔ وو مونږه \| دې لره \| تابع كونكي \| او بيشكه مونږه \| رب خپل ته \| | | | | | |
| ...... \| گني مونږ خو (په خپل طاقت) دا قابو كولې نه شو \| او مونږ بهٔ ټول خپل | | | | | |
| لَمُنْقَلِبُوْنَ ﴿١٤﴾ | | | | | |
| خامخا واپس ورتلونكي يو \| | | | | | |
| رب ته واپس ورځو \| | | | | | |

**قوله تعالى:: وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ**

**خالق كل بس يو الله دې**: الله ﷻ فرمائي چه اې نبي! كه ته د دې مشركانو نه تپوس اوكړې نو دوی ددې خبرې اقراركوی چه د زمكې اود آسمان خالق الله ﷻ دې بيا هم دهغه وحدانيت پيژني او مني خو د هغه په عبادت كښې نور شريك جوړوی چا چه زمكه فرش، دقرار ځاني، ولاړه اومضبوطه جوړه كړله چه تاسو پرې گرځې راگرځې كينې پاسې او اوسيږې. حالانكه دازمكه پخپله په اوبو باندې ده خو مضبوط غرونه سره يې دخوزيدو راخوزيدو نه رامنع كړې ده اوپه دې كښې يې لارې جوړې كړې دی چه تاسو د يو ښارنه بل ښار ته او يو ملك نه بل ملك ته اورسيږې.هم هغه د اسمان نه په دې انداز باران وروی چه كافي وی او پټې اوباغونه شنه شي او دا اوبه ستاسو اوستاسود څناورو په څكلو كښې هم راځي.بيا بئ ددې باران په ذريعه مړه زمكه راژوندې كړه اوچه زمكه لامده شوه څنگلونه شنه شولو ميوې او گلونه راوټوكيدل او قسما قسم ښكلې ميوې پيدا شوې .

بيايئ دا دليل جوړ كړو د مړو انسانانو د ژوندی كيدو او وې فرمائيل هم دغه شان به تاسو د قبرونو نه رااوباسلې شي.هغه هر قسمه جوړې پيدا كړلې فصلونه گلونه سبزياني او ميوې وغيره قسما قسم څيزونه هغه پيداكړل.مختلف قسم څناور ئې ستاسو د فائدې دپاره پيدا كړل.كشتئ ئې دسمندرد سفر دپاره اود اوچې د سفر د پاره ئې دڅاروو انتظام اوكړلو چه په هغې كښې ډيرو څناورو غوښه تاسو خورې اوډير تاسو ته پې شوده دركوی او ډيرستاسو دسورلې په كار راځي تاسو دپاره دبوج اوړلو كار هم كوی.تاسو په دې باندې سورلی كوې او ډير په خوند په دې سوريږې.اوس تاسو له پكاردی چه كله تاسو په سورلې ښه په قلار كينې نو د خپل رب تعالی نعمتونه ياد كړې چه هغه څومره طاقت ور وجودونه ستاسو په قابو كښې كړل او داسې اووايې چه هغه الله ﷻ پاك ذات والا دې چا چه دا زمونږ په

قابو کښې کړله که هغه دا زمونږه مطیع کړې نه وه نو مونږ ددې قابل نه وو اونه مونږ کښې دومره طاقت وو او مونږ خپل مرګ نه پس هم هغه طرف ته تلو والا یو .په دې آمدورفت او په دې مختصر سفرباندې د آخرت سفر رایاد کړې لکه څنګه چه الله د دنیا دتوښې د ذکر کولو نه پس دآخرت د توښې طرف ته توجه ورکړله او وې فرمائیل چه توښه تیاروې خو غوره توښه د آخرت توښه ده او دنیوی لباس په موقعه یې د آخرت لباس طرف ته متوجې کړل او وې فرمائیل چه دتقوی لباس افضل اوبهتر دې

قوله تعالی: ﴿سُبْحٰنَ الَّذِیْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا﴾

**په سورلۍ باندې د سوریدو دعاګانې:** په سورلۍ دسوریدو په وخت د دعاګانو حدیثونه ، حضرت علی بن ربیعه فرمائی چه حضرت علی﷛ چه کله په سورلۍ سوریدو نوخپه به په رکاب کیښودو سره اووې بسم الله کله چه بښه کیناستو نووې ونیل ﴿اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ وَاِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ﴾ بیا نې درې ځله الحمد لله اووې او درې ځله الله اکبر اووې بیا نې اوونیل ﴿سبحانك لااله الاانت قد ظلمت نفسی فاغفرلی﴾ بیا مسکې شو.ما تپوس اوکړوامیر المومنین تاسو ولې اوخندل؟وې فرمائیل مادرسول الله ﷺ نه دا تپوس کړې وو نو هغوې جواب راکړو کله چه دبنده د خلې نه الله ﷻ واوری چه هغه رباغفرلی وائی یعنی اې زما ربه ما اوبخښې نو هغه ډیر زیات خوشالیږی او فرمائی چه زما بنده ته پته ده چه زما نه سوا څوك د ګناهونو بخونکې نشته دې .دا حدیث ابو داود ،ترمذی،نسائی،اومسند احمد کښې هم شته دې .امام ترمذی دې حدیث ته حسن صحیح وائی .

بل حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ حضرت ابن عباس﷛ په خپلې سورلۍ باندې خان سره شاته کینوو چه بښه کیناسته نوهغوی ﷺ درې ځله اووې الله اکبر او درې ځله نې الحمد لله اووې او درې ځله نې سبحان الله اووې او یو ځل نې لا اله الا الله اووې بیا په سورلۍ باندې نیغ د ناستې د حالت په شان شو او وې خندل او حضرت عبد الله ﷛ طرف ته متوجه شو او وې فرمائیل کوم کس چه په یو ځناور سور شی اوداسې اوکړی څنګه چه ما اوکړل نوالله ﷻ دهغه طرف ته متوجه شی اوهم دغه شان خاندی څنګه چه ما تا ته اوکتل او اومې خندل .([1]) مسند احمد

حضرت عبد الله بن عمر ﷛ فرمائی چه رسول الله ﷺ به کله په خپله سورلۍ سوریدلو نو درې ځله به نې تکبیراووې اوددواړو آیتونو تلاوت به نې اوکړو بیا به نې دادعا اوغوښتله ﴿اللهم انی اسئلك فی سفری هذا البروالتقوی ومن عمل ما ترضی اللهم هون علینا السفر واطولنا البعد اللهم انت الصاحب فی السفر والخلیفه فی الاهل اللهم اصحبنا فی سفرنا واخلفنا فی اهلنا﴾.یاالله زه ستا نه په دې خپل سفر کښې دنیکۍ او د تقوی طالب یم اودهغه اعمالو چه ته پرې خوشالیږې اې الله مونږ ته داسفر آسان کړې او زمونږ دا مسافت رالنډ کړې .اې ربه هم ته د سفر ملګرې اوداهل وعیالو نګهبان یې اې زما معبوده زما په سفر کښې زما مدد اوکه او په کورونو کښې زمونږ جانشین جوړ شه . اوکله چه هغوی ﷺ د سفرنه واپس کورطرف ته راتلل نو فرمائیل به نې ﴿ آئبون تائبون ان شاء الله عابدون لربنا حامدون﴾ یعنی واپس راتلو والا توبه کولو والا ان شاءالله عبادت کولو والا د خپل رب تعریف کولو والا ([2]).مسلم ابوداود نسائی وغیره .

ابولاس خزاعی﷛ فرمائی چه دصدقې په اوښانو کښې یو اوښ رسول الله ﷺ مونږ د سورلۍ د پاره راکو چه مونږه پرې حج له لاړشو.مونږ عرض اوکړو چه مونږ نه وینو چه تاسو مونږه په دې باندې سوروې هغوی ﷺ اوفرمائیل دهر اوښ په کوهان کښې یوشیطان وی ته چه کله په دې سورشې نو څنګه چه څه حکم درکوم چه د الله نوم یاد کړې بیا دا سورلی دخان دپاره خادمه جوړه کړې یادساتې چه هم الله ﷻ

[1]) احمد:۱/۳۳۰. .

[2]) صحیح مسلم کتاب الحج باب استحباب الذکر اذا رکب دابته.....:۱۳۴۲، ابوداود:۲۵۹۹، ابن حبان: ۲۶۹۶.

سورروي([1])(مسند احمد)دحضرت ابو لاس نوم محمد بن اسود بن خلف دي ﷺ .د مسند په يو بل حديث کښې دي چه نبي ﷺ فرمائي چه د هر اوښ په شا يو شيطان وي نو چه تاسو کله په اوښ سورلۍ کوئ نو د الله ﷻ نوم اخلئ بيا په خپل حاجتونو کښې کمې مه کوئ([2]).

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَجَعَلُوا | لَهُ | مِنْ عِبَادِهِ | جُزْءًا |

او جوړ کړو دې کافرانو | هغه لره | د بندګانو د هغه نه | يوه حصه يعني اولاد

| اودوئ د الله ﷻ په بندګانو کښې هغه دپاره يوه حصه مقرر کړې ده

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّ الْإِنسَانَ | لَكَفُورٌ | مُّبِينٌ ﴿١٥﴾ | أَمِ اتَّخَذَ | مِمَّا |

بيشکه انسان | خامخا ناشکره دې | ښکاره | آيا اونيولې (خوښې کړې) الله | هغې نه

حقيقت دا دې چې انسان ښکاره ناشکره دې | ....................آيا هغه د خپل مخلوق نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَخْلُقُ | بَنَاتٍ | وَأَصْفَاكُم | بِالْبَنِينَ ﴿١٦﴾ | وَإِذَا |

چې پيدا کوي ئې هغه | لونړه | او غوره ئې کړئ تاسو | په ځامنو سره | او هر کله چې

ځان دپاره (هيله) لونړه خوښې کړې دي او تاسو ئې په ځامنو سره غوره کړئ | او حال دا دې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بُشِّرَ | أَحَدُهُم | بِمَا | ضَرَبَ | لِلرَّحْمَٰنِ |

زيرې ورکړې شي | يو د دوئ ته | په هغې اولاد سره | چې بيان کړې دې دوئ | دپاره د رحمان

چې څه وخت دوئ په هغه څيز خبر کړې شي | کوم چې دوئ د رحمن (الله ﷻ) دپاره

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَثَلًا | ظَلَّ | وَجْهُهُ | مُسْوَدًّا | وَهُوَ | كَظِيمٌ ﴿١٧﴾ | أَوَمَن |

په مثال کښې | نوشي | مخ د هغه | تور | او هغه | ډك وي د غم نه | آيا هغه څوك |

بيان کړې دې | نو (د غم او غصې د وجې) مخ ئې تور شي | او ډير زيات د غمژن شي | آيا هغه څوک چې په دول

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يُنَشَّؤُا | فِي الْحِلْيَةِ | وَهُوَ | فِي الْخِصَامِ | غَيْرُ مُبِينٍ ﴿١٨﴾ |

چې لويوئ کيږي | په کالو کښې | او هغه | په جګړه کښې | نه شي بيانولې مدعا خپله |

کښې ساتلې شي او په جګړه کښې په وضاحت سره دليل نشي بيانولې (هغه د نارينه سره برابر کيدې شي)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَجَعَلُوا | الْمَلَائِكَةَ | الَّذِينَ | هُمْ | عِبَادُ الرَّحْمَٰنِ | إِنَاثًا | أَشَهِدُوا |

او وي ګڼړلې | فرښتې | هغه | چې هغوئ | بندګاني د خدائې دي | ښځې | آيا حاضر وو دوئ

او دوئ فرښتې چې د الله ﷻ بندګاني دي زنانه ګڼړلې دي | نو آيا دوئ په هغه وخت کښې موجود وو

| | | |
|---|---|---|
| خَلْقَهُمْ | سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ | وَيُسْأَلُونَ ﴿١٩﴾ |

په وخت د جوړښت د هغوئ کښې ازر به ليکلې کيږي ګواهي د دوئ او تپوس به او کړې شي د دوئ نه

څه وخت چې هغوئ الله پيدا کولې | د دوئ دا دعوې ليکلې شي | او تپوس به ترې کيږي

[1] احمد: ٤/٢٢١، وسنده حسن ، مجمع الزوائد: ١٣١/١٠.

[2] احمد : ٤٩٤/٣، وسنده حسن ، دارمي :٢٨٥/٢.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالُوْا | لَوْشَاءَ | الرَّحْمٰنُ | مَا عَبَدْنٰهُمْ | مَا لَهُمْ |
| اووابي دوئ | كه غوښتلي | رحمان خدائي | نونه به كولي مونږ عبادت ددوئ | نشته دوئ لره |

اودوئ وائي چې كه الله ﷻ غوښتلي نو مونږ به ددي (فرښتو) عبادت نه كولو | دوئ د

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِذٰلِكَ | مِنْ عِلْمٍ | اِنْ هُمْ | اِلَّا يَخْرُصُوْنَ۝ |
| په دې خبره | څه علم | نه دي دوی | مګر اټکل چلوی |

حقيقت نه هډو خبر نه دی | خو په اټكل پسې روان دی |

**قوله تعالى: وَجَعَلُوْا لَهٗ مِنْ عِبَادِهٖ جُزْءًا**

**د مشركانو خود ساخته تقسيم** :الله ﷻ د مشركانو د دې افترا او دروغو باره كښې فرماني كوم چه هغوی دالله ﷻ باره كښې وائي چه د هغې ذكر دسورة انعام آيت وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ الخ كښې دې يعني الله ﷻ چه كوم فصلونه او څناور پيدا كړی دی دې مشركانو په دې كښې خو څه حصه د الله ﷻ دپاره مقرر كړې ده او د خپل ځان نه ئې اووې چه دا خو د الله ﷻ ده او دا زمونږ د معبودانو ده.اوس چه كوم د دوی د معبودانو د نوم ده هغه الله ﷻ طرف ته نه رسي او كوم څيز چه د الله ﷻ وی هغه دې معبودانو ته رسي .څنګه خراب او بد د دوی دا تجويز دې ؟هغه مشركانو هلكان او جينكې تقسيم كړل او جينكې ئې خو د الله ﷻ دپاره ثابتې كړې چه كومې د دوی په خيال ذليله او خوارې وی او هلكان ئې خپل ځان له خوښ كړل. لكه څنګه چه دباری تعالی فرمان دې ﴿اَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْاُنْثٰى۝تِلْكَ اِذًا قِسْمَةٌ ضِيْزٰى۝﴾ آيا ستاسو د پاره خو دې هلكان وی اود الله ﷻ دپاره جينكې؟ داخو ډير بې خونده تقسيم دې.د دې وجې دلته هم فرماني چه د مشركانودالله ﷻ بندګان د الله جز ګنړلې دې .

بيا فرماني چه د دوی دې بد تميزی ته اوګورې چه پخپله ځان له نه خوښوی بيا الله ﷻ له ئې څنګه خوښوی؟د دوی دا حالت دې چه كله دوی كښې چا ته د دې خبر او رسي چه تا كره جينۍ پيدا شوې ده نود ده خوله ورانه شي لكه چه يو شرمناك او د غم خبر ئې واوريدو چا ته د دې ذكر هم نه كوی دننه دننه خوټكيږی تندې ترې يو رازوړند وی خو بيا د خپل حماقت اظهار په دې شان اوكړی چه د الله ﷻ هم لونړه دی . دا ډيره د مزې خبره ده چه پخپله د كوم څيز نه يريږی الله ﷻ لره هم هغه ثابتوی

**قوله تعالى: اَوَمَنْ يُّنَشَّؤُا فِي الْحِلْيَةِ**

**ښځې فطری كمزوری** :بيا فرماني ښځې چه ناقص ګنړلې شي چه دهغوئ د نقصاناتو تلافی په كالو اوځان ښائسته كولو سره كيږی او وړوكوالي نه واخلې ترمركه پورې هغه د ښاو سنګار حاجتمنه ګنړلې شي بيا د بحث مباحثې او د جګړو په وخت كښې ددې ژبه نه چليږی او څه ښه دليلونه نه شي وركولې عاجزه پاتې شي او مغلوبه شي يو داسې څيز دوی الله طرف ته منسوب كوی چه ظاهری اوباطنی كمياني خپل دننه ساتی دچا چه ظاهری كمې د كالو او دزينت اختيارولو سره د لرې كولو كوششونه كيږی لكه څنګه چه د بعضو عرب شاعرانو اشعار دی .

وما الحلي الا زينه من نقيصه يتمم من حسن اذا الحسن قصرا
واما اذا كان الجمال موفرا كحسنك لم يحتج الى ان يزورا

يعني كالي دحسن كمې پوره كولو دپاره وی د ډير زيات حسن دپاره دكالو څه ضرورت؟ (مترجم د طرف نه ) لكه څنګه چه د يو اردو شاعر شعر دې .

تیرے حسن وجمال کی خاطر تل بھی کافی ہے زیورات ہے کیا

**ترجمه:** ستا د حسن د پاره ستا دا يو تور خال كافي دې د كالو هيڅ ضرورت نشته

اوباطنی کمیانې هم پکښې دی لکه بدله نشی اخستلې نه په ژبه او نه په همت دامضمون هم عربو ادا کړې دې اوچه دوی صرف په چغو او په ژړا مدد کولې شی او په پټه څه نه څه ښیګړه کولې شی .بیا فرمائی چه دوی فرښتې ښځې ګڼړلي دی ده دوی نه تپوس اوکړه چه کله دا فرښتې پیدا کیدې نو آیا تاسو هلته موجود وې ؟ تاسو دا مه ګڼړې چه مونږ ستاسو د دې خبرو نه نا خبره یو دا ټول مونږ سره لیکلې شوې دی او د قیامت په ورځ به د دې باره کښې سوال هم کیږی د څه نه چه تاسو له یره پکار ده او هوښیاریدل پکار دی .

قوله تعالی: ﴿وَجَعَلُوا الْمَلٰٓئِكَةَ الَّذِيْنَ هُمْ عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ اِنَاثًا﴾

بیادوی نورحماقت بیان فرمائی چه دوی وائی چه مونږ فرښتې ښځې اوګڼړلې بیا مودهغوئ بتان جوړ کړل او بیا مونږ د هغوئ عبادت کوو که الله ﷻ غوستل نو مونږ اود دوی په مینځ کښې به حائل شوې وې او مونږ به د دوی عبادت نه شو کولې.ددې وجې چه مونږ د دوی عبادت کوو او الله زمونږ او د دوی په مینځ کښې نه حائله کیږی نو دا خبره ظاهره ده چه زمونږ دا عبادت صحیح دې غلط نه دې .

پس ړومبې غلطی خو د دوی دا ده چه دوی الله ﷻ لره اولاد ثابتوی او دویمه غلطی دا چه فرښتو ته د الله ﷻ لونړه وائی او دریمه غلطی دا ده چه دهغوئ نې عبادت شروع کړې دې چه په هغې باندې هیڅ څه دلیل نشته دې صرف د خپل مشرانو او مخکښنو پلارانویو ړوند تقلید دې .څلورمه غلطی نې دا ده چه دا نې دالله ﷻ د طرف نه مقرر اومنل او د دې نه دا نتیجه رااوویستله که چرې الله ﷻ په دې ناراضه وې نو مونږ ته به نې دومره طاقت نه وو راکړې چه مونږ د دوی عبادت کړې وې او دا د دوی صفا جهالت او بې وقوف توب دې.الله ﷻ په دې باندې ډیر زیات نا راضه دې یو یو پیغمبر ددې خبره تردید کړې دې یو یو کتاب د دې بد بیان کړی دی .لکه چه فرمان دې ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ﴾ یعنی په هر امت کښې مونږه رسولان علیهم السلام رالیږلې دی چه د الله ﷻ عبادت کوې اودهغه نه علاوه د بل چادعبادت نه ځان ساتې بیا بعض خوداسې اوختل چا ته چه الله ﷻ هدایت اوکړو او بعضې داسې هم اوختل چا باندې چه دګمراهۍ خبره ثابته شوه .تاسو په زمکه کښې بنه اوګرځې اوګورې چه د دروغ ګڼړلو څنګه خراب حشر اوشو؟ بل آیت کښې دی ﴿وَسْـَٔلْ مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ﴾ الخ یعنی ته د دې رسولانو نه تپوس اوکه کوم چه مونږ تا نه مخکښې لیږلې وو آیا مونږه د خپل ځان نه علاوه د بل چا د عباد ت اجازت ورکړې وو؟ بیا فرمائی چه دا دلیل خو د دوی ډیر عجیبه او خراب دې او عجیبه په دې چه دا بې علمه دی خپل ځان نه خبرې جوړوی او دروغ وائی یعنی دوی د الله هغه قدرت چه په دوی باندې نې دې هغه نه پیژنی.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَمْ اٰتَيْنٰهُمْ | | | | | |
| آیا ورکړې وو مونږ دوئ ته | | | | | |
| آیا مونږ دې خلقو ته | | | | | |
| كِتٰبًا | مِّنْ قَبْلِهٖ | فَهُمْ | بِهٖ | مُسْتَمْسِكُوْنَ ۝ | بَلْ قَالُوْٓا |
| کتاب | مخکښې ددې نه | چې ګنی دوئ | په هغې سره | منګولې لګونکې دی | بلکه وئې دوئ |
| ددې نه وړاندې څه کتاب ورکړې دې | | چې دوئ بې بنیاده په شرک باندې ټینګ دی ؟ | | | بلکه دوئ وائی |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّا | وَجَدْنَآ | اٰبَآءَنَا | عَلٰٓى اُمَّةٍ | وَّاِنَّا | عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ |
| بیشکه | موندلی دی مونږه | پلاران زمونږه | په یوه طریقه باندې | او بیشکه مونږه | په قدمونو دهغوئ باندې |
| چې مونږ خپل پلار نیکه په یوه لار موندلی وو | | | | اوس مونږ په هغوئ پسې روان یو | |

مُّهۡتَدُوۡنَ۝ وَكَذٰلِكَ مَآ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ فِىۡ قَرۡيَةٍ

تلونکي یو | او دارنګي | نه وو لیږلي مونږه | مخکښي ستا نه | په یو کلي کښي

...... اودغه شان مونږ ستانه وړاندي چي کوم یو کلي ته هم څوک

مِّنۡ نَّذِيۡرٍ اِلَّا قَالَ مُتۡرَفُوۡهَآ ۙ اِنَّا وَجَدۡنَآ

یو یرونکي پیغمبر | مګر اوونیل | مالدارو خلقو دهغه کلي | بیشکه موندلي دي مونږه

ویرونکي لیږلي دي | نو د هغي کلي خوشحاله خلقو ورته دا وئیلي وو | چي مونږ خپل پلار نیکه

اٰبَآءَنَا عَلٰٓى اُمَّةٍ وَّاِنَّا عَلٰٓى اٰثٰرِهِمۡ مُّقۡتَدُوۡنَ۝

پلاران زمونږه | په یوه طریقه باندي | او بیشکه مونږه | په قدمونو دهغوئ باندي | روان یو

هم په دې طریقه موندلي وو | اومونږد هغوی په تابعدارئ کښي په هغوئ پسې روان یو

قٰلَ اَوَلَوۡ جِئۡتُكُمۡ بِاَهۡدٰى مِمَّا

ورته اوونیل پیغمبر | آیا اګر که راوړې دې ماتاسو ته | زیات ښه لار ښودونکي | دهغې نه

پیغمبر ورته اوونیل | اګر که ما درته د هغې نه بهترینه طریقه راوړي وی | په کومه چي تاسو

وَجَدۡتُّمۡ عَلَيۡهِ اٰبَآءَكُمۡ ؕ قَالُوۡۤا اِنَّا

چي موندلي دي تاسو | په هغې باندي | پلاران ستاسو | اوونیل هغوئ | بیشکه مونږه

خپل پلار نیکه موندلي وو(نوبیا هم تاسو زما خبره نه منئ)|...... هغوئ به ورته اوونیل | چي (بیاهم)

بِمَآ اُرۡسِلۡتُمۡ بِهٖ كٰفِرُوۡنَ۝ فَانۡتَقَمۡنَا مِنۡهُمۡ

په هغې چي لیږلي شوي يئ تاسو | په هغې | انکار کونکي یو | پس بدل واغستو مونږه | دهغوئ نه

مونږ ستاسو دپیغام قبلولو نه انکاریان یو | ......نومونږ د هغوی نه بدله واخستله

فَانۡظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُكَذِّبِيۡنَ۝ ع

پس اوګوره | څرنګي وو | انجام | ددروغ ګڼرونکو |

نوته اوګوره چي د دروغ ګڼرونکو انجام څه شو |

قوله تعالی:: بَلۡ قَالُوۡۤا اِنَّا وَجَدۡنَاۤ اٰبَآءَنَا

**دپلارنیکه غلط تقلید کول** کوم خلق چي د الله ﷻ نه سوا دنورو عبادت کوی دهغوئ باره کښي بیان کیږی چي هغوئ سره هیڅ دلیل نشته دې او داوائی چي مونږ دوئ ته ددوئ دشرک نه مخکښي کتاب ورکړي وو اودهغوئ نه دوئ سند پیش کوی یعنی حقیقت داسې نه دې . لکه فرمائی چي ﴿اَمۡ اَنۡزَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ سُلۡطٰنًا﴾ یعنی ولي مونږ په دوئ داسې دلیل نازل کړې دې چي هغه دوئ ته د شرک وائی؟ یعنی داسې نه دی، بیا فرمائی چي داخونه بلکه دشرک سند خو دوئ سره صرف اوصرف یو دې اوهغه دپلارانو اونیکونو ړوند تقلید چي په کوم دین دهغوئ وو مونږ به هم په دې قائم یو .دامت نه دې څائې کښي مراد دین دې لکه بل آیت مبارک کښي دی چي ﴿اِنَّ هٰذِهٖۤ اُمَّتُكُمۡ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ ددې نه هم مراد دین دې . ورسره وائی چي مونږد هغوئ په لار روان یو .نودوئ بی دلیله دعوې نه پس الله ﷻ فرمائی چي ددوئ نه مخکښي هم دا طریقه و . ددوئ جواب هم دنبیانو دتعلیم په مقابله کښي هم دا تقلي پیش کول وو .بل ځائې کښي فرمائی چي ﴿كَذٰلِكَ مَاۤ اَتَى الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ مِّنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا قَالُوۡا سَاحِرٌ اَوۡ مَجۡنُوۡنٌ﴾

يعنى ددوئ نه مخكښي خلقونه چې رسول راغلې دې نو هغه امتونو هغه ته ليونې او جادوګر وئيلي دي . لكه د مخكښې او روستو په خلو كښې بس دالفظونه پراته دى حقيقت دادې چې په سر كشئ كښې دوئ يورنګ دى . بيا ارشاد كولې شى چې هر كله دوئ معلوم كړى او پوهه شى چې دانبياء عليهم السلام تعليم زمونږ د پلرونواونيكونو تقليد نه غوره دې خو بيا هم ددوئ اراده اوضد ډير زيات وى . دوئ حق نه قبلوى . نو مونږد داسې اړى ماروخلقو نه مونږ خامخابدل اخلو او په مختلفو طريقو ئې تباه كوؤ اوبربادكوؤ . ددوئ قصه ډيره مشهوره ده اودا ذكر شوې ده . په غور او فكر ئې اولولئ اوپه دې ښه سوچ اوكړئ چې كافران څنګه بربادكړې شوى دى اومومنانو څنګه خلاصې موندلې دې .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ | قَالَ | اِبْرٰهِيْمُ | | | |
| او كله چې | اووئيل | ابراهيم | | | |
| ..........او كله چې ابراهيم ﷺ | | | | | |
| لِاَبِيْهِ | وَقَوْمِهٖٓ | اِنَّنِيْ | بَرَآءٌ | مِّمَّا | تَعْبُدُوْنَۙ |
| پلار خپل ته | او قوم خپل ته | بيشكه زه | بيزاره يم | دهغې نه | چې تاسو ئې عبادت كوئ |
| خپل پلار او خپل قوم ته اووئيل | ..............چې زه ستاسو دمعبودانو نه بيزاره يم | | | | |
| اِلَّا الَّذِيْ | فَطَرَنِيْ | فَاِنَّهٗ | سَيَهْدِيْنِ | | |
| ماسوا دهغه ذات نه | چې پيدا ئې كرم زه | پس بيشكه هم هغه به | لار ښائي ماته | | |
| سوا دهغه ذات نه چې زه ئې پيدا كړې يم | نو هم هغه به راته سمه لاره اوښائى | | | | |
| وَجَعَلَهَا | كَلِمَةً | بَاقِيَةً | فِيْ عَقِبِهٖ | لَعَلَّهُمْ | |
| اواوګرزوله ابراهيم دغه كلمه | باقى پاتې كيدونكى | په پشت (اولاد) خپل كښې | دپاره ددې چې هغوئ | | |
| اوهغه دا (دتوحيد) خبره په خپل اولاد كښې باقى پاتې پريښوده | ..............د دې دپاره چې | | | | |
| يَرْجِعُوْنَ | بَلْ | مَتَّعْتُ | هٰٓؤُلَآءِ | وَاٰبَآءَهُمْ | |
| واپس شي (توحيدته) | بلكه | مابه دژوند سا مانونه وركول | دوئ له | او پلارانو ددوئ له | |
| أننده هم خلق (دشرك) نه واپس اوګرځى | حقيقت دا دې چې مادوئ اوددوئ پلار نيكونو ته ډيرډير | | | | |
| حَتّٰى | جَآءَهُمُ الْحَقُّ | وَرَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ | وَلَمَّا | جَآءَهُمُ الْحَقُّ | |
| تر دې پورې | چې راغې دوئ ته حق | او رسول صفا بيانونكې | او هر كله چې | راغې دوئ ته حق | |
| سامانونه وركړى دى | تردې چې رښتيني (قرآن) اوواضحه وينا كونكې پيغمبر ورته راغلو | اوكله چې ورته رښتيني | | | |
| قَالُوْا | هٰذَا سِحْرٌ | وَّاِنَّا | بِهٖ | كٰفِرُوْنَ | وَقَالُوْا |
| نو اوويل دوئ | دا جادو دې | او بيشكه مونږه | په دې | انكار كونكې يو | اووائي دوئ |
| قران راغلو | نو دوئ اووئيل چې دا خو جادو دې | اومونږ خودا نه منو | او دا ئې اووئيل چې دا | | |
| لَوْلَا نُزِّلَ | هٰذَا الْقُرْاٰنُ | عَلٰى رَجُلٍ | مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ | عَظِيْمٍ | |
| ولې نازل نه كړې شو | دا قران | په يو سړى باندې | ددوؤ كلونه | سړى لوئ باندې | |
| قران پاک د دوو (لويو) كلو په چا لوئې سړى باندې ولې نه نازليدلو(چې يو مكه او بل طائف دې) | | | | | |

اَهُمْ يَقْسِمُوْنَ رَحْمَةَ رَبِّكَ ط نَحْنُ قَسَمْنَا

ایا دا خلق | تقسیموی | رحمت درب ستا | دا خو مونږه یو | چی تقسیم کړی دی مونږه

ایا دوئ ستا د رب رحمت تقسیموی؟| ............ هم مونږ ددوئ روزی په دنیا

بَيْنَهُمْ مَّعِيْشَتَهُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَرَفَعْنَا

په منځ ددوی کښی | ذریعې دګذران ددوئ | په ژوند ددنیا کښی | او پورته کړی دی مونږه

کښي ددوئ په منځ کښي تقسیم کړي ده | اومونږ بعضو ته په بعضو نورو کسانو باندي

بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ

خیني ددوئ | دپاسه | دځینو نورو | په مرتبو کښي | دپاره ددي چي اونیسي | خیني ددوئ

مرتبي اوچتي کړي دي | ............ چي یو کس (افضل) د بل کس (مفضول) نه کار اخلي

بَعْضًا سُخْرِيًّا ط وَرَحْمَةُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ۝

ځینو نورو لره | خدمت ګار | او رحمت درب ستا | بهتر دي | دهغي دولت نه | چي دوئ ئي جمع کوي

اوستا درب رحمت د هغي مال نه ډیرغوره دي کوم چي داخلق راجمع کوي

وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً لَّجَعَلْنَا

او که نه وي (دا یره) | چي شي به خلق (ټول) | ډله | یوه | نو خامخا به جوړ کړي وو مونږه |

اوکه دا خبره نه وي چي ټول خلق به یوه ډله (کافران) شي | نو مونږ به

لِمَنْ يَّكْفُرُ بِالرَّحْمٰنِ لِبُيُوْتِهِمْ سُقُفًا مِّنْ فِضَّةٍ

دپاره دهغه چا | چي کفر کوي | دخدائي سره | کورونو دهغوئ لره | چتونه | دسپینو زرو

د رحمان (الله ﷻ) منکرانو دپاره دکورو چتونه دسپینو زرو جوړ کړي وو

وَّمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُوْنَ ۝ وَلِبُيُوْتِهِمْ اَبْوَابًا وَّسُرُرًا

اواندرباني | چي په هغي | ختیږي هغوئ | اوکورونو دهغوئ لره | دروازي | او تختونه

او پوړئ چي په هغي به ورختل اودهغوئ دکورونو دروازي اوتختونه

عَلَيْهَا يَتَّكِـُٔوْنَ ۝ وَزُخْرُفًا ط وَاِنْ كُلُّ ذٰلِكَ لَمَّا

چي په هغي باندي | تکیه ګانو نه ددي وهي هغوئ | او دسروزرو | اونه دي دا ټول | مګر

چي په هغي به ئي ډډي وهلي دا ټول هم سرو زرو نه جوړ کړي وو | اودا ټول ځیزونه هیڅ نه دی | دا خو

مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ط وَالْاٰخِرَةُ عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِيْنَ ۝

سامان | دي دژوند ددنیا | او اخرت | په نز درب ستا | دپاره دمتقیانو دي |

د دنیا د خو ورځو د نفعي سامان دي | اواخرت ستا د رب په نیز پرهیزګارانو دپاره دي |

**قوله تعالى:: وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖٓ**
**شرک بالکل ختمول ابراهیم ﷺ سنت دي** :: دقریشو کفارو ددین اودنسب اعتبار سره حضرت ابراهیم ﷺ ته منسوب وو په دي وجه الله ﷻ دهغوي مخکښي سنت ابراهیمی کیخودو او وي فرمائیل

چې اوګورئی هغه خپل خان نه پس دتولو نبیانو علیهم السلام پلار او دالله ﷻ رسول او امام الموحدین وو .هغوئ په ښکاره نه صرف د خپل قوم نه بلکه خپل څکه پلار ته ئې هم اووئیل چې څما او ستا هیڅ تعلق نشته دې . او خپل الله ﷻ چې څما خالق او معبود او څما هادی دې ، څۀ ستاسو دټولو معبودانو نه بیزار یم او ددوئ سره څما هیڅ تعلق نشته .اوالله ﷻ ددوئ د توحید او حق وینا او جوش اوجذبې دابدله ورکړه چې هغوئ په اولاد کښې ئې کلمه دتوحید باقي اوساتله . ناممکن دی چې دهغوئ په اولاد کښې ددې کلمې قائل نه وی ، هم ددوئ اولاد به ددې حق کلمې اشاعت کوی . اوسعیدا نیک روحونه به هم ددې کورنئ نه توحید زده کوی . غرض دا چې دا کورنئ د اسلام او توحید معلمه جوړه شوه.

**قوله تعالی: :بَلْ مَتَّعْتُ هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ**

**مشرکانو صرف د خپل ضد په وجه انکار اوکړو:**بیا فرمائی چې دې کفارو شرک کولو او ما دوئ ته دنیا ورکوله او دوئ په دهوکه کښې اخته وو او دومره لرې لاړل چې کله دوئ ته حق دین او حق ویونکی رااغلل نودوئ دا اووئیل چې دالله ﷻ کلام او دنبیانو علیهم السلام معجزې جادو دې . او مونږ ددې نه منکر یو .او دسرکشئ او ضد په وجه ئې کفر شروع کړو .او د عناد او کفر په و جه دحق مقابله کولو ته تیار شو .او وې وئیل چې که دادالله ﷻ قران دې او په رښتیا دالله ﷻ کتاب دې نو بیادا ولې دمکې اوطائف په یومالدار سړی ولې نه نازلیدو . او مالدار اولوئې سړی نه ددوئ مراد ولید بن مغیره ، عروه بن مسعود ، عمیر بن عمر ، عتبه بن ربیعه ، حبیب بن عمرو ، ابن عبدیالیل ، کنانه بن عمرو وغیره وو .غرض دا وو چې ددې کلو په یو لوئې مرتبې والا سړی باندې ولې دا قران پاک نازل نشو .

**قوله تعالی: :اَهُمْ يَقْسِمُوْنَ رَحْمَتَ رَبِّكَ**

ددې اعتراض په جواب کښې فرمان کیږی چې آیا دوئ دالله ﷻ درحمت مالکان دی څه ؟ چې دوئ دا تقسیموی . دالله ﷻ څیزونه دالله ﷻ ملکیت دی هغه ذات چې چاته څومره ورکوی نوهغه ورکوی او بیا چرته ستاسوعلم اوچرته د هغه ذات علم؟ هغه ذات ته ددې ښه علم دې چې دالله ﷻدرسالت صحیح حقدار څوک دی؟ دا نعمت هغه چاته ورکړې کیږی چې هغه د ټول مخلوق نه زیات پاک وی . او هغه نفس ډیر پاک وی . او ټولو نه زیات دا چې ټولو نه عزت مندې کورنئ سره دهغه تعلق وی . او ټولو نه دزیات پاک اصل والا وی ؟

بیا فرمائی چې څنګه دالله ﷻ د رحمت تقسمولو والا شو؟ ددوئ خپل رزق هم ددوئ په قبضه کښې نه دی . ددې تقسیم هم په دوئ تقسیموی .او فرق تفاوت سره چې چاته څومره ورکړه کوؤ نو هغه ورکوؤ .اودچا نه ئې چې کله اوغواړو نواخلو ئې ترې او هم دوئ ته عقل، فهم،قوت او طاقت ورکړې دې . او په دې کښې هم جدا جدا مرتبې دی . په دې کښې یو حکمت دادې چې دیو بل نه کار واخلی څکه چې ددې دوئ ته ضرورت او حاجت وی . دیو بل ماتحت وی . بیا ارشاد اوشو چې تاسو په دنیا کښې څه جمع کوئی دهغې نه دالله ﷻ رحمت ډیر بهتر او افضل دې . دې نه پس الله ﷻ فرمائی که چرې دا خبره نه وې چې خلق به مال لره څما دفضل او څماد رضامندئ دلیل جوړ کړی اونیسی اود مالدارو په شان به شی نو څۀ به کفارو ته دومره دنیاورکړم چې دهغوئ دکورونو چتونه بلکه د کوټو پوړئ به هم د چاندئ وې چې دهغې په ذریعه به دوئ خپلو بالا خانوته تللئ . او د هغې دروازې او دهغوئ دناستې پاستې څایونه او تختونه به هم دچاندئ وې . اود سرو به وې . څما په نزد ددنیا هیڅ قدروقیمت نشته .دا فانی ده او دا ختمیدو والا ده . او که چاته ټوله ملاؤ شی نو بیا هم د آخرت مقابله کښې دا ډیره کمه ده .ددې خلقود نیکو بدله کښې دوئ ته داملاویږی .

خوراک څکاک کښې څه اسانۍ ورکوي . اخرت کښې به دوئ بالکل خالي لاسونه وي . يوه نيکي به باقي پاتې نشي چې په هغې الله ﷻ نه څه واخلي .

لکه يو صحيح حديث پاک دی که ددنيا قدر دالله ﷻ په نزد دماشي ديو وزر برابر وې نو يو کافر ته به ئې داوبو يو ګوټ هم نه وې ورکړې (۱)

بيا فرمائي چې دآخرت نيکۍ صرف هغه چا دپاره دی چې هغوئ په دنيا کښې ډير په خيال قدمونه ايږدي په ويره ويره ژوند تيروی . هلته به دالله ﷻ خاص او نعمتونه اومخصوص رحمتونه به هغه چا ته ملاويږی چې هغه سره به په دې کښې څوک شريک نه وی . نو کله چې حضرت عمرفاروق ﷺ د حضرت نبی کريم ﷺ بالاخانې ته راغلو او نبی ﷺ هم په هغه وخت کښې خپلو بيبيانو سره ايلاء کړې وه نو وې کتل چې حضرت نبی کريم ﷺ په يو پوزکی باندې تکيه لګولې ده ملاست دی . اوهغې نښې د حضرت نبی کريم ﷺ په ملا مبارکه باندې دی نو په ژړا شو او وې وئيل چې يا رسول الله ! ﷺ اوګورئ قيصر وکسری څومره ښه ژوندتيروی اوتاسو دالله ﷻ برګزيده او خوږ نبی يئ اوستاسو څه حال دې ؟ حضور نبی کريم ﷺ تکيه لګولې وه او راپورته شو اوتکيه ئې پريخوده او وې فرمائيل چې ائې ابن خطاب ! آيا ته په شک کښې ئې ؟ دا خوهغه خلق دی چې دوئ ته به ددوئ نيکئ هم دلته ملاويږی (۲)

(يو بل روايت کښې دی چې آياته په دې خوشحاله نه ئې چې هغوئ ته دنيا ملاؤشی او مونږ ته آخرت. (۳)بخاري ومسلم وغيره کښې دی چې رسول الله ﷺ فرمائي چې د سرو او سپينو په لوښو کښې خوراک څکاک مه کوئی دا دنيا کښې ددوئ دپاره دی او آخرت زمونږ دپاره دی. (۴))

او په دنيا کښې ددوئ دپاره داسې دی چې دالله ﷻ په نظر کښې دنيا ذليل او خواره ده . دترمذی وغيره يوبل حديث پاک دی چې حضور ﷺ اوفرمائيل چې که ددنيا وقعت دالله ﷻ په نظر د ماشي برابر وی نو کافر ته به ئې يو ګوټ اوبه هم نه وې ورکړې (۵))

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ يَّعْشُ | عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ | نُقَيِّضْ | لَهٗ شَيْطٰنًا | فَهُوَ |
| او هغه څوک چې بې پرواهي کوی | دذکر درحمان نه | مونږ مسلط کوو | په هغه ايو شيطان | پس هغه |
| اوڅوک چې د رحمان د ذکر نه غفلت اختيار کړی | | نو مونږ ده دپاره يو شيطان مقرر کړو | | |
| لَهٗ | قَرِيْنٌ ۞ | وَاِنَّهُمْ | لَيَصُدُّوْنَهُمْ | عَنِ السَّبِيْلِ |
| هغه لره | ملګرې شي | او بيشکه دا شيطانان | خامخا منع کوی خپل ملګری | دلارې (نيغې) نه |
| نو هغه د ده ملګرې وی | | اوبيشکه هغوئ ئې د نيغې لارې نه منع کوی | | او دوئ |
| وَيَحْسَبُوْنَ | اَنَّهُمْ | مُّهْتَدُوْنَ ۞ | حَتّٰى | اِذَا جَآءَنَا |
| او ګمان کوی هغوئ | چې بيشکه هغوئ | په نيغه لار دی | | تر دې پورې | چې کله راشي مونږ ته |
| خيال کوی | چې ګنی دوی په نيغه لار روان دی | | تر دې چې دا | سرې مونږ ته راشي |

---

۱) ترمذی کتاب الزهد باب ماجاء فی هوان الدنيا علی الله عزوجل : ۲۳۲۰، وهو حسن ابن ماجه : ۴۱۱۰. حاکم :۳۰۶/۴.

۲) صحيح بخاری کتاب المظالم باب الغرفة والعلية المشرفة......:۲۴۶۸، صحيح مسلم: ۱۴۷۹.

۳) صحيح بخاری کتاب التفسير سورة التحريم : باب (( تبتغی مرضات ازواجک...)) : ۴۹۱۳، صحيح مسلم: ۱۴۷۹.

۴) صحيح بخاری کتاب الاطعمة باب الاکل فی اناء مفضض: ۵۴۲۶، صحيح مسلم ۲۰۶۷.

۵) ترمذی کتاب الزهد باب ماجاء فی هوان الدنيا علی الله عزوجل :۲۳۲۰، وهو حسن ابن ماجه: ۴۱۱۰.

قَالَ يٰلَيْتَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ

نو وانی به | کاش چی | په منځ زما | او په منځ ستا کښې | لرې والې ددوه مشرقونو وې

نو (دې شيطان ته) به اووائی چې افسوس ! زما او ستا په مينځ کښې دمشرق اود مغرب لرې والې وې

فَبِئْسَ الْقَرِيْنُ ۞ وَلَنْ يَّنْفَعَكُمُ الْيَوْمَ اِذْ ظَّلَمْتُمْ

پس ډې بدملګرې ئې ته | او هرګز به فائيده درنهٔ کړې تاسو ته | نن ورځ | هر کله چې ظلم کړې دې تاسو

ته خومره خراب ملګرې يې | او ن اوس به درته هيڅ فائده درنه کړی | ځکه چې کفر مو اختيار کړې وو

اَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ۞ اَفَاَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ

چې بيشکه تاسو | په عذاب کښې | شريک يئ | آيا پس تهٔ به | اوروول اوکړې | کونړ سړې ته

اوس به تاسو ټول په عذاب کښې شريک يئ |.............. آيا ته کنړو ته خپل آواز اوروولې شې ؟

اَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ وَمَنْ كَانَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۞ فَاِمَّا

يا به لار اوښانې | ړوند ته | او هغه چاته | چې وی | په ګمراهئ | ښکاره کښې | پس که چرې

يا ړندو ته لار خودلې شې | او هغه چاته چې په ښکاره ګمراهئ کښې پراته دی | نو که

نَذْهَبَنَّ بِكَ فَاِنَّا مِنْهُمْ مُّنْتَقِمُوْنَ ۞ اَوْ نُرِيَنَّكَ

بوزو مونږ تا لره | پس بيشکه مونږه | ددوئ نه | بدله اغستونکی يو | يا اوښايو مونږ تاته

مونږ تا (ددې دنيا نه) بوځو (وفات کړو) | نو بيا هم ددې کافرونه خو به بدله اخلو | او يا به تا ته

الَّذِيْ وَعَدْنٰهُمْ فَاِنَّا عَلَيْهِمْ

هغه انجام | چې وعده ئې کړې ده مونږ ددوئ سره | پس بيشکه مونږه | په دوئ باندې

هغه عذاب اوښايو | دکوم چې مونږ دوئ سره وعده کړې ده | نو مونږ په دوئ باندې هر

مُّقْتَدِرُوْنَ ۞ فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِيْٓ اُوْحِيَ اِلَيْكَ ۚ اِنَّكَ

قدرت لرونکی يو | پس مضبوط اونيسه | هغه کتاب | چې وحی کړې شوې دې | تاته | بيشکه تهٔ

ځنګه قدرت لرو | نو ته په دې قران باندې قائم اوسيږه | .............. چې تاته رالېږلې شوې دې

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۞ وَاِنَّهٗ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ ۚ

په | لاره | نيغه باندې ئې | او بيشکه دا کتاب | يو نصيحت دې | تالره | او قوم ستالره

بيشکه ته په سمه لاره باندې قائم يئ | او بيشکه دا قران پاک ستا او ستاد قوم دپاره ښه نصيحت دې

وَسَوْفَ تُسْـَٔلُوْنَ ۞ وَسْـَٔلْ مَنْ اَرْسَلْنَا

او ډير زر به | تپوس اوکړې شی ستاسو نه | او تپوس اوکړه | د هغه چانه | چې لېږلی دی مونږه

او ډير زر به تاسو نه تپوس کيږی | او ته د هغې پيغمبرانو نه تپوس اوکړه | چې مونږ

مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً

مخکښې ستا نه | درسولانو زمونږ نه | آيا مقرر کړی وو مونږه | بې | درحمن نه | نور خدايان

ستانه مخکښې لېږلې وو | چې آيا مونږ د رحمان نه سوا نور معبودان مقرر کړی وو

| |
|---|
| يَعۡبُدُونَ ۝ |
| چې عبادت داوکړې شي دهغوئ ا |
| چې دهغوئ عبادت دې کولې شي ا |

**قوله تعالى:: وَمَنۡ يَعۡشُ عَنۡ ذِكۡرِ الرَّحۡمٰنِ**

**دالله ﷻ دذکر نه دغفلت نتيجه** ::ارشاد دې چې کوم کس دالله ﷻ د ذکر نه غفلت اختيار کړې او بې رغبته شي نودهغه په زړه شيطان حمله کوي . اوددهٔ ملګرې شي .دسترګې دنظر کمی ته په عربئ کښې عشی في العين وائي. هم دا مضمون دقران پاک په نورو آيتونو مبارکو کښې راغلي دې لکه فرمائي چې ﴿ وَمَنۡ يُّشَاقِقِ الرَّسُوۡلَ ﴾يعنی کوم کس چې دهدايت ظاهريدو نه پس هم دالله درسول مخالفت اوکړی او دمومنانودلارې نه سوابله لار اختيار کړې نو مونږ به هغه هم هلته پريږدو او جهنم ته به ني داخل کړو اوهغه ډير خراب ځائې دې او يو بل آيت مبارک کښې دی چې﴿فَلَمَّا زَاغُوۡا اَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوۡبَهُمۡ﴾ يعنې کله چې هغوئ کاږه شو نو الله ﷻ هم دهغوئ زړونه کاږه کړل . اوبل آيت مبارک کښې دی چې ﴿وَقَيَّضۡنَا لَهُمۡ قُرَنَآءَ ﴾ يعنی مونږ چې دهغوئ هم نشين مقرر کړل نوهغوئ ددوئ مخکښې اوروستو والا څيزونه زينت جوړوی او هغه خوروی. دلته ارشاد دې چې داسې غافله خلق الله ﷻ خپل قابو کښې راولی . اودوئ دالله ﷻ د لارې نه منع کوی . اوددوئ په زړه کښې دا خبره کينوی چې ددوئ دا طريقه ډيره ښه ده . دا بالکل صحيح دې . په دې قائم اوسه . اوکله چې دوئ دقيامت په ورځ دالله ﷻ مخکښې پيش شي اوهلته ورته صحيح معامله معلومه شي نو دوئ به دخپل دوست شيطان نه برات ظاهر کړی . او وائی به چې کاش ځما او ستا مينځ کښې دومره فاصله وې لکه څومره چې دمشرق او مغرب ترمينځه ده . دلته د غلبې داعتبار په طور د مشرقينو يعنې د دوه مشرقو ذکر اوکړو .لکه نمر او سپوږمئ ته ئې چې قمرين يعنی دوه سپوږمئ وئيلې کيږی او مورپلار ته ابوين يعنی دوه پلاران وئيلې کيږی .

**قوله تعالى:: حَتّٰۤى اِذَا جَآءَنَا**

**دقبر نه دراپورته کيدو په وخت کښې به کافرانو سره شيطان لګيدلې وی**::يو قرات کښې ﴿جاء نا﴾ هم دی يعنې شيطان او داغافله انسان چې کله مونږ ته راشی.حضرت جرير رحمة الله عليه فرمائی چې کله کافر دخپل قبر نه پورته کيږی نو شيطان زر راشی او دهٔ سره لاس ملاؤ کړی اوبيا نه جدا کيږی . تردې چې دوئ دواړه جهنم ته هم يو ځائې اچولې شی .

بيا فرمائی چې جهنم ته ستاسو د ټولو جمع کيدل اودهغه ځائې عذاب کښې شريکيدل ستاسو د فائدې دپاره نه دی . دې نه پس خپل نبی ﷺ ته فرمائی چې دازلی کڼرو په غوږونو کښې ته د هدايت آواز نشې ورتومبلې . او مورزادی ړندو ته ته لار نشې ښائيلې . کوم چې په ښکاره ګمراهئ کښې پراته دی هغوئ ستا هدايت نشی قبلولې . يعنې زمونږ طرفنه په تاباندې فرض نه دی خواه مخواه دې هر سړې دې مسلمان شی . هدايت ستا د قبضې څيز نه دې . چې څوک حق طرفته غوږ نه ايږدی،څوک چې حق طرفته سترګې نه غړوی څوک چې دهوکه شی او هم په دې کښې خوشحاله وی نوتاته دهغوئ دومره فکردې؟ په تاباندې صرف تبليغ ضروری دې او هدايت او ضلالت زمونږ په لاس کښې دی . څه حکيم ذات يم ، مونږ چې څه کوؤ نوهغه به کوؤ ته زړه مه تنګوه . بيافرمائی اګر چې مونږ تا ددې ځائې نه بوزو نوبيابه هم مونږ ددې ظالمانونه بدله اخلو .مونږ به تاته هغه څه اوښايو چې هغې مونږ تاسره وعده کړې ده . مونږ خو ددې نه عاجز نه يو .غرض داشان او هغه شان

دوارو صورتونو کښې به په کفارو باندې عذاب وی . خو بیاهغه صورت خوښ کړې شو چې کوم کښې د پیغمبر ﷺ عزت زیات وو یعنی الله ﷻ ته وفات نه کړې ترکومې چې ئې خپل دښمنان مغلوب کړل . ستاسترګې مویخې کړې . ته به ددوئ دمالونو او ملکیتونو مالک جوړ شې . داخو دحضرت سدی رحمه الله وغیره تفسیر دې . خو حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چې داالله ﷻ نبی ﷺ ددنیا نه فوت کړې شو او تول انتقام باقی پاتې شو .الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته ددوئ په ژوند کښې هغه معاملات اونه خودل چې کوم نبی کریم ﷺ ته خوښ نه وو .د نبی کریم ﷺ نه سوا دنورو نبیانومخکښې دهغوئ په امتونو باندې عذابونه راغلل . مونږ ته دا هم وئیلې شوی دی چې کله حضور نبی کریم ﷺ ته دا معلوم کړې شو چې ستا په امت باندې به څه څه وبال رازی.نو دهغه وخت نه حضور ﷺ تر خپل دوفات وخت پورې په ډکه خوله نه دی خندلی (١) حضرت حسن رحمه الله هم دا شان روایت کړې دې . یو حدیث پاک دی چې ستوری د آسمان دبچ کیدو سبب دی . هرکله چې ستوری راپریوزی نو آسمان به مصیبت کښې راشی . څه دخپلو صحابه کرامو د امن ذریعه یم. څما نه پس به څما په صحابه کرامو باندې هغه څه راشی چې دکومې وعدې کولې شی (٢)

بیا ارشاددې چې کوم قران پاک په تاباندې نازل شوې دې هغه سراسر حق او رښتیا دې . اودا د حقانیت نیغه اوصفا لار ښائی نودا مضبوطیا سره اونیسه او همدا جنت نعیم او نیغې لارې طرفته رهنمائی کوی. څوک چې په دې باندې څی او دا سینې سره لګوی نو هغه هیڅ کله هم نه ذهوکه کیږی .داستااو ستا دقوم دپاره ذکر دې . یعنی اشرف او بزرګی ده. بخاری کښې دی چې حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې دا امر (یعنی خلافت او امامت) به قریښو کښې وی څوک چې دوئ سره جنګ کوی او ددوئ نه ئې اخلی نو هغه به ناکام کیږی ترکومې چې په دین باندې قائم وی . (٣) په دې وجه هم ددوئ قومې شرافت په دې کښې دې چې قران کریم د نبی کریم ﷺ په ژبه کښې نازل شوې دې . دقریښو په لغت کښې نازل شوې دې . نو داظاهر ده چې تولونه زیات به په دې باندې هغوئ ښه پوهیږی . هغوئ ته پکار دی چې هغوئ په دې باندې تولو نه زیات عمل کوونکی جوړ شی . خاص کر په دې ډیره لویه بزرګی ده دهغه مهاجرینو چې هغوئ اول اول اسلام قبول کړې وو او په هجرت کښې هم تولو نه وړاندې وو. او دوئ سره قدم په قدم روان وو. دذکر معنی نصیحت هم ده. په دې صورت کښې دا یاد ساتل پکار دی چې دحضور ﷺ قوم دپاره ددې نصیحت کیدل او نورو دپاره د نصیحت نه کیدو معنی کښې نه دی لکه فرمائی چې ﴿لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَیْكُمْ كِتٰبًا فِیْهِ ذِكْرُكُمْ﴾ یعنی بالیقین مونږ تاته قران پاک نازل کړې دې چې په دې کښې ستا دپاره نصیحت دې نو آیا ته عقل نه لرې ؟ او یو بل آیت کریمه کښې دی چې ﴿وَاَنْذِرْ عَشِیْرَتَكَ الْاَقْرَبِیْنَ﴾ یعنی خپل خاندان والا رابیدار کړه . غرض د قران پاک نصیحت کیدل او رسالت دنبی ﷺ عام دی .دا دخاندان والودپاره هم دی او تولې دنیا والو دپاره هم دی .بیا فرمائی چې نزدې ده چې ستاسو نه سوال کیږی چې تاسو په کلام الله باندې څومره عمل کړې دې او دا مو ترکومه حده پورې اومنلو؟ تولو رسولانو خپلو خپلو قومونو ته همدا دعوت ورکړې دې چې کوم ائې نبی آخرالزمان ته ورکوې . د تولو نبیانو علیهم السلام د دعوت خلاصه داوه چې هغوئ توحید خور کړو او شرک ئې ختم کړو. لکه څنګه چې قران پاک کښې دی چې مونږ هر امت دپاره رسول اولیږلو چې دالله ﷻ عبادت

---

(١) الطبری .

(٢) صحیح مسلم کتاب فضائل الصحابة باب بیان ان بقاء النبی ﷺ امان لاصحابة :٢٥٣١. احمد: ٣٩٨/٤، مسند ابی یعلی : ٧٢٧٦.

(٣) صحیح بخاری کتاب الاحکام باب الامر من قریش : ٧١٣٩ احمد:٩٤/٤.

کوئی او دهغه نه سوا د نور چا عبادت مه کوئی . دحضرت عبدالله ﷺ قرات دا ایت مبارک نازل شوې دې چې ﴿وَسْئَلْ مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَا﴾ نو دا د تفسیر په شان دې دا تلاوت نه دې [1] والله اعلم. نو مطلب دا شو چې ته د دوئ نه تپوس او کړه چې مونږ دوئ ته مخکښې رسولان لیږلي وو . عبدالرحمان ﷺ فرمائی چې د دې نبیانو علیهم السلام نه تپوس او کړه . یعنی د معراج په شپه کله چې ټول نبیان علیهم السلام نبی ﷺ سره جمع شوی وو. هر نبی زمونږ طرفنه لیږلي شوې وو چې هغه د توحید تعلیم ورکړي او شرک ختم کړي .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا | مُوْسٰى | بِاٰيٰتِنَآ | | |
| او بې شکه لیږلي وو مونږه | موسی | دنښو خپلو سره | | |
| او مونږ موسی ﷺ په خپلو نښو سره | | | | |
| اِلٰى فِرْعَوْنَ | وَمَلَاۡئِهٖ | فَقَالَ | اِنِّىْ | رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ |
| فرعون ته | ملګرو دهغه ته | پس او وئیل هغه | بیشکه زهٔ | رسول یم درب العالمین |
| فرعون او دهغه سردارانو ته لیږلي وو | نو ورته ئې او وئیل چې زه د رب العالمین رسول یم | | | |
| فَلَمَّا | جَآءَهُمْ | بِاٰيٰتِنَآ | اِذَا هُمْ | مِّنْهَا يَضْحَكُوْنَ |
| پس هر کله | چې راغې هغه هغوئ ته | دنښو زمونږ سره | نو بیا هغوئ | په هغې پورې خندل |
| بیا چې موسی ﷺ ورته زمونږ ورکړې نښې وړاندې کړې | نو هغوئ ورپورې خندا کانې شروع کړې | | | |
| وَمَا نُرِيْهِمْ | مِّنْ اٰيَةٍ | اِلَّا | هِىَ اَكْبَرُ | مِنْ اُخْتِهَا وَاَخَذْنٰهُمْ |
| اونهٔ به ښودله مونږ هغوئ ته | یوه نښه | مګر | هغه به لویه وه | دهغه بلې نه / او او نیول مونږ هغوئ |
| او مونږ چې به ورته کومه نښه ښودله | نو هغه به د بلې نه غټه وه | او مونږ دغه خلق په | | |
| بِالْعَذَابِ | لَعَلَّهُمْ | يَرْجِعُوْنَ | وَقَالُوْا | يٰۤاَيُّهَ السّٰحِرُ |
| په عذاب سره | دپاره ددې چې هغوئ | رااوخي (د کفرنه) | او او وئیل هغوئ | اے جادوګره |
| عذاب کښې راونیول | چې هغوئ (د خپلو غلطو لاروچارو) نه منع شي | او هغوئ او وئیل چې اے جادوګره | | |
| اُدْعُ لَنَا | رَبَّكَ | بِمَا | عَهِدَ | عِنْدَكَ |
| او غواړه دپاره زمونږه | درب خپل نه | په سبب دهغې وعدې | چې کړې ئې ده | تاسره |
| ته زمونږ دپاره د خپل رب نه سوال او کړه | چې د کومې خبرې چې هغه تاسره وعده کړې ده | | | |
| اِنَّنَا | لَمُهْتَدُوْنَ | فَلَمَّا | كَشَفْنَا | عَنْهُمُ الْعَذَابَ |
| بیشکه مونږه | خامخا هدایت موندونکی یو | پس هر کله چې | الرې کړو مونږه | دهغوئ نه عذاب |
| نو مونږ به ضرور په نیغه لار روان شو | ......... نو بیا چې ترې مونږ عذاب لرې کړو | نو | | |

[1] الطبری: ۶۱۱/۲۱.

| |
|---|
| إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ |
| بیا دوئ دی \| چې اوړی دخبری نه \| |
| هغوئ(هم هغه وخت) خپله وعده ماته کړه \| |

**قوله تعالی:: وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا**

**حضرت موسی ﷺ دلائلو او براهینو سره فرعون طرفته::** هر کله چې الله ﷻ حضرت موسی ﷺ خپل نبی او رسول جوړ کړو او فرعون او هغه رعایا ، قبطیانو او بنی اسرائیلو طرفته ئې اولیږلو چې ته هغوئ ته توحید اوښایه اودشرک نه بچ کړه. حضرت موسی ﷺ ته ئې لوئې لوئې معجزې ورکړې لکه د لاس روښانه کیدل ، دهمسا نه اژدها جوړیدل وغیره خو فرعونیانو دخپل نبی ﷺ قدر اونه کړو بلکه تکذیب ئې اوکړو او هغه پسې ئې خندا گانې کولې نو په دې وجه په هغوئ باندې عذاب راغلو چې یو خو هغوئ ته عبرت حاصل شی او بل دا د حضرت موسی ﷺ په نبوت باندې دلیل هم وی . نو هغوئ باندې طوفان راغلو ، مولخان راغلل ، دسپږو عذاب پرې راغلو ، دچیندخانو عذاب پرې راغلو ، او د پتو او مال او ځان او میوؤ کمې وغیره پرې راغلل . کله چې به عذاب راغلو نو په چغو به شو. دحضرت موسی ﷺ خوشامندې به ئې کولې ،هغه به ئې رضا کولو ، هغه سره به ئې وعده کوله چې ته دالله ﷻ نه دعا اوکړه چې دا عذاب لرې شی . خو چې کله به عذاب لرې شو نو بیا به ئې سرکشی شروع کړه. بیا به پرې عذاب راغلو. ساحر یعنې جادوګر نه هغوئ لوئې عالم مراد اخلی . دهغوئ دزمانې دعالمانو هم دا لقب وو. او هم په دې خلقو کښې علم وو. او په هغه زمانې کښې به ددې علم مذمت نه کیدو بلکه دې ته به ئې دقدر په نظر کتل . نو حضرت موسی ﷺ ته جادوګر دعزت په طور داعتراض به ئې نه وئیل. ځکه چې هغوئ خو خپل کار ویستلو. هرځل به ئې اقرار کولو چې مونږ به مسلمانیږو اوبنی اسرائیل به هم تاسره کړو. بیا چې به کله عذاب لرې شو نو وعده خلافی به ئې کوله او خپل قول به ئې مات کړو. لکه یو آیت مبارک کښې دی چې ﴿فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ﴾ دې آیت مبارک کښې ددې واقعې پوره تفصیل دی

| |
|---|
| وَنَادَىٰ فِرْعَوْنُ فِي قَوْمِهِ قَالَ |
| \| او آواز اوکړو \| فرعون \| په قوم خپل کښې \| او ې وئیل \| |
| ه\| اوفرعون خپل قوم ته اعلان اوکړو\| او دا یې اووئیل |
| يَا قَوْمِ أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَٰذِهِ الْأَنْهَارُ تَجْرِي |
| اے قومه زما \| آیا نه ده \| ماله \| بادشاهی \| دمصر \| او دا نهرونه \| چې بهیږی \| |
| چې ائې زما قومه آیا د مصر بادشاهی زما نه ده \| اودا ټول نهرونه چې زما په حکم باندې |
| مِن تَحْتِي أَفَلَا تُبْصِرُونَ أَمْ أَنَا خَيْرٌ مِّنْ هَٰذَا الَّذِي هُوَ |
| لاند دحکم زما نه\| آیا پس نهٔ وینئ تاسو \| آیا زهٔ \| بهتر یم \| ددې سړی نه \| هغه سړې \| چې هغه |
| بهیږی \| نو آیا تاسو دا نه وینئ ؟ \| نو اوس فیصله په تاسو ده چه) زه د دې سړی (موسی) نه غوره نه یم |
| مَهِينٌ وَلَا يَكَادُ يُبِينُ فَلَوْلَا أُلْقِيَ عَلَيْهِ |
| سپك دې \| اونهٔ دې داسې \| چې واضحه بیا نکړی خبره خپله \|پس ولې نه واچول شو \| ده ته |
| چې ددهٔ هیڅ مقام نشته \|او سمې واضحه خبرې هم نشی کولې \| نودهٔ ته د سرو زرو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَسْوِرَةٌ | مِّن ذَهَبٍ | أَوْ جَاءَ | مَعَهُ | الْمَلَٰٓئِكَةُ | مُقْتَرِنِينَ۝ | |
| بنگري | دسرو زرو | يا (ولې) راغلي | ددهٔ سره | فرښتې | پيوست (ملګرې) | |

بنګري ولې نه دي اچولي شوې يا ده سره يو ځاي فرښتې ولې نه دي راغلی (چه د ده تصديق يې کولې)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاسْتَخَفَّ | قَوْمَهُ | فَأَطَاعُوهُ ط | إِنَّهُمْ | كَانُوا |
| پس هغه سپك اوموندو | قوم خپل | پس هغوئ اطاعت اوکړو د هغه | بيشکه هغوئ | وو |

دغه شان دهٔ خپل قوم بې توفه جوړ کړو | نو د هغه تابعداري يې اوکړه | بيشکه دوئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَوْمًا | فَسِقِينَ۝ | فَلَمَّا | ءَاسَفُونَا | انتَقَمْنَا | مِنْهُمْ |
| يو قوم | نافرمانه | پس هر کله چې | هغوئ په قهر کړو مونږه | نو بدله واغستله مونږه | دهغوئ نه |

نافرمانه خلق وو | بيا کله چې هغوئ مونږ خفه کړو | نو هغه مونږ دهغوئ نه بدله واخسته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَأَغْرَقْنَٰهُمْ | أَجْمَعِينَ۝ | فَجَعَلْنَٰهُمْ | سَلَفًا | وَمَثَلًا |
| پس ډوب کړل مونږه هغوئ | ټول | پس اوګرځول مونږه هغوئ | پيشوايان | اويوه نمونه دعبرت |

بيا مونږ هغوي ټول هلاک کړل | نو د نورو (راتلونکو) خلقو دپاره مو مشران او (دعبرت)

| |
|---|
| لِّلْءَاخِرِينَ۝ |
| دپاره دروستنو خلقو |

نمونې جوړ کړې|

**قوله تعالى:: وَنَادَىٰ فِرْعَوْنُ فِي قَوْمِهِ**

**دفرعون سرکشي او تکبر::** د فرعون سرکشي او خود سري بيانوي چې ټول قوم ئې راجمع کړو اوورته ئې اووئيل چې آيا څه ښتاسو دملک مصر تنها بادشاه نه يم ؟ آيا ځما باغونو کښې اومحلونو کښې نهرونه جاري نه دي ؟آيا تاسو ځما عظمت او سلطنت ته نه ګورئ؟ اوتاسو د موسى عليه السلام ملګرو ته اوګورئ چې څومره فقيران او ضعيفان دي .

قران پاك کښې يو بل ځاي کښې دي چې هغه ټول راجمع کړل اوورته ئې اووئيل چې آيا څه ستاسو لوئ رب نه يم ؟ نو په دې وجه الله ﷻ هغه ددې ځائې اودهغه ځائې په عذابونو کښې راګير کړو . (ام) د (بل) په معنى دې. دځينو قاريانو قرات ( اما انا) هم دې [1] امام ابن جرير رحمة الله عليه فرمائي چې دا قرات که صحيح شي نو ددې معنى به بالکل واضحه او صفا شي . خودا قرات دټولو ښاروندقرات نه خلاف دې . دټولو قرات (ام) د استفهام دې [2] حاصل دادې چې فرعون ملعون خپل ځان د حضرت کليم الله عليه السلام نه بهتر ګڼړلو اودا په اصل کښې ددې ملعون دروغ وو . د﴿ مهين﴾ معنى حقير اوضعيف ده .

**قوله تعالى:: وَلَا يَكَادُ يُبِينُ۝**

**ددوئ داعتراض څه وجه ده ؟:** بيا فرمائي چې حضرت موسى عليه السلام به صفا وينا نه شوه کولې . دهغه کلام فصيح نه وو .هغه خپل غرض چاته نه شو بيانولې ځينې وائي چې هغوئ وړوکوالى کښې خپله خوله مبارکه کښې د اور سکروټهٔ اچولې وه. اوهغې اثر ددوئ په ژبه باندې اوس هم وو. داهم د فرعون مکر

[1] الطبرى : ٦١٨/٢١.
[2] طبرى : ٦١٨/٢١.

او فریب دي. حضرت موسی ﷺ صفا خبري کولو والا او عزت والا او رعب والا وو. خودې ملعون دالله ﷺ نبی ته کفر په سترګه کتل نو په دې وجه به هغه هم داخیال کولو. حقیقت کښې هغه پخپله ذلیل او غبي وو. اګرچې دحضرت موسی ﷺ په ژبه مبارکه کښې څه لکنت وو او ددې وجه داوه چې په وړوکوالی کښې په ژبه باندې سکروټۍ ایخودې وه. خو حضرت موسی ﷺ الله ﷻ نه دعا اوغوښتله او دهغوئ د ژبې لکنت ختم شو. او خلق ددوئ په خبره په آسانئ سره پوهیدل. اوکه دا اومنلې شی چې څه فرق باقي وو ځکه چې هغه په دعا دکلیم کښې دومره وو چې څما دژبې دومره لکنت ختم شی چې خلق څما په خبره په آسانئ سره پوهیږي. نودا د څه دعیب خبره نه ده. الله ﷻ چې څوک څنګه غواړي نو هغه شان ئې جوړوي. په دې کښې دعیب څه خبره ده اصل خبره دا وه چې فرعون دروغ خبره جوړوله او خپل خلق ئې ددوئ خلاف کول غوښتل.

**قوله تعالی:: فَلَوْلَآ أُلْقِيَ عَلَيْهِ أَسْوِرَةٌ**

اوګورئې که نه مخکښې وائي چې په ده باندې دآسمان نه ولې نه وریږي. دې دومره مالدار کیدل پکار دي چې دده لاسونو کښې سرۀ زر وی خو دۀ سره خو هیڅ نشته دې او مفلس دې. اوکه داسې هم نه وی نو کم ازکم د آسمان نه چې ورسره الله ﷻ فرښتې رانازلې کړې وې چې مونږ خو پرې باور کولې چې دا دالله ﷻ نبی دې. غرض داچې هغه (فرعون) ډیرې خبرې اوکړې چې خلق بې قوف کړی اوهغوئ خپل هم خیال کړی، دې خپله فاسق او فاجر وو.

**قوله تعالی:: فَلَمَّآ ءَاسَفُونَا انتَقَمْنَا مِنْهُمْ**

دفسق وفجور په خبره باندې هغه ډیر اخته شو. هرکله چې دهغه فسق وفجور زیات شو اوهغه په ښکاره دالله ﷻ نافرمانی شروع کړه اوالله ﷻ ئې ښه خفه کړو نوبیا دالله ﷻ غضب په هغه باندې راغلو اود هغه ټول هرڅه ښکاره شو. یو طرفته اوبو کښې غرض کړې شو او بل طرفته به هغه په جهنم کښې په اورکښې سوزی. حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چې هرکله الله ﷻ چا ته دنیا ورکوی اوهغه دالله ﷻ نافرمانئ کوی نو په دې پوهه شه چې الله ﷻ هغه ته ډیل ورکوی. بیا حضرت نبی کریم ﷺ هم دا آیت مبارک تلاوت کړو. دحضرت عبدالله ﷺ مخکښې چې کله د مرګ ذکر اوشو نو دوئ اوفرمائیل چې په ایماندار باندې تخفیف دې او په کافر باندې حسرت. بیا دوئ هم دا آیت مبارک اولوستلو. (۱) ابن ابی حاتم حضرت عمر بن عبدالعزیز ﷺ فرمائی چې انتقام غفلت سره دې. بیا الله ﷻ فرمائی چې بیا مونږ یو نمونه جوړ کړو چې دهغه دپاره کار کولو والا ددۀ انجام اوګوری. اودا مثال یعنی باعث عبرت جوړ شو چې په دې واقعاتو کښې غور اوکړئې او ددې نه ځان بچ کړئې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا قَوْمُكَ | مَثَلًا | ابْنُ مَرْيَمَ | ضُرِبَ | وَلَمَّا | |
| نو بیا قوم ستا | په مثال کښې | خوئي دمریم | بیانکړې شو | او هر کله چې | |
| او کله چې د بی بی مریم دځوئي مضمون واوروليې شو نو څه ګورو چې ستا قوم په | | | | | |
| أَمْ هُوَ | خَيْرٌ | ءَأَٰلِهَتُنَا | وَقَالُوٓا | يَصِدُّونَ | مِنْهُ |
| او که هغه | بهتر دي | آیا معبودان زمونږه | اووې ونیل | شور جوړوی خاندی | په هغې پورې |
| دې باندې دخوشحالئ نه چغې وهل شروع کړل اووې ونیل چې آیا زمونږ معبودان غوره دي او که هغه (عیسی) | | | | | |

(۱) الدرالمنثور :۳۸٤/۷.

مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ اِلَّا جَدَلًا ؕ بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُوْنَ ۝٥٨

نه بيانوي دوئ دا مثال | تاته | مګر دپاره دجګړې | بلکه دوئ | قوم | جګړمار دي |

دوئ داخبره صرف د جګړې په غرض کړې ده | .........بلکه داخلق هسې هم جګړمار دي

اِنْ هُوَ اِلَّا عَبْدٌ اَنْعَمْنَا عَلَيْهِ وَجَعَلْنٰهُ

نه وو هغه (ابن مريم) | مګر | يو بنده وو | چې انعام کړې وو مونږ | په هغه باندې | اوجوړ کړې وو مونږ هغه

عيسى خو زمونږ يو (نيک) بنده وو | چې مونږ پرې فضل کړې وو | او هغه مو دبني اسرائيلو دپاره

مَثَلًا لِّبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۝٥٩ وَلَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا

يو مثال (نمونه) | دپاره دبني اسرائيلو | او که غوښتلې مونږه | نو ګرځولې به وې مونږه

(دخپل قدرت) نمونه جوړه کړې وه | او که چرې مونږ غوښتلې نو تاسو نه به مو فرښتې

مِنْكُمْ مَّلٰٓئِكَةً فِي الْاَرْضِ يَخْلُفُوْنَ ۝٦٠ وَاِنَّهٗ

ستاسو نه | فرښتې | په زمکه کښې | چې اوسيدلې به په خائې ستاسو | اوبيشکه هغه |

پيدا کړې وې | چې په زمکه کښې به ستاسو په خائې اوسيدې | .او حضرت عيسى د قيامت د راتلو

لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ ؕ

خامخا نښه ده | دپاره دقيامت | پس مه کوئ شک تاسو | په دې قيامت کښې | او پيروی اوکړئ زما

يوه نښه ده | نو تاسو په دې باره شک مه کوئ | ...............اوزما تابعداري اوکړئ (قيامت اومنئ) |

هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ۝٦١ وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ ۚ اِنَّهٗ لَكُمْ

دا | لاره | نيغه ده | او منع د نه کړې تاسو | شيطان | بيشکه هغه | تاسو لره |

دانيغه لاره ده | اوشيطان دې تاسو د نيغې لارې دتلونه منع نکړې | ..........بلکه هغه ستاسو

عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ۝٦٢ وَلَمَّا جَآءَ عِيْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ قَالَ

دشمن ښکاره دې | او هر کله چې | راغې عيسى عليه السلام | دښکاره نښو سره | نو اووئيل هغه |

ښکاره دښمن دې | اوکله چې عيسى ﷺ ښکاره نښې راوړې | نو خلقو ته ئې اووئيل

قَدْ جِئْتُكُمْ بِالْحِكْمَةِ وَلِاُبَيِّنَ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ

چې راغلې يم زۀ تاسو ته | دحکمت سره | او دپاره ددې چې بيان کړم زۀ تاسو ته | خينې خبرې | هغه

چې تاسو ته مې دحکمت خبرې راوړې دي | او ځکه راغلې يم چې تاسو ته بعضې هغه خبرې ښکاره کړم

تَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ۝٦٣ اِنَّ اللّٰهَ

چې تاسو اختلاف کوئ | په هغې کښې | پس اوويريږئ د الله نه | او اطاعت اوکړئ زما | بيشکه الله چې دې

په کومو کښې چې تاسو اختلاف کوئ | نو د الله ﷻ نه اوويريږئ | او زما تابعداري اوکړئ | بيشکه الله

هُوَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ۝٦٤

هغه رب زما دې | او رب ستاسو دې | پس عبادت کوئ دهغه | دا لار | نيغه | ده |

زما هم رب دې | او ستاسو هم رب دې | نو صرف دهغه عبادت کوئ | هم داسمه نيغه لاره ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاخْتَلَفَ | الْأَحْزَابُ | مِنْ بَيْنِهِمْ | فَوَيْلٌ | لِلَّذِينَ | |
| پس اختلاف اوکړو | ډلو | په خپل منځ کښې | پس تباهي ده | دپاره دهغه کسانو | |
| نو بيا (په دې پسې هم) مختلفو ډلو په خپل مينځ کښې اختلاف پيدا کړو | | | | نو ظالمانو دپاره | |
| ظَلَمُوا | مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ أَلِيمٍ | | | | |
| چې ظلم ئې اوکړو | دعذاب دورځې دردناکې نه | | | | |
| د دردناکې ورځې دعذاب په وجه لويه تباهي ده | | | | | |

**قوله تعالى:: وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ**

**دمشرکانو کوم معبودان جهنميان دي او د ايت د نزول قصه :: د (يَصِدُّونَ) معنى** ابن عباس ﷺ مجاهد رحمه الله، عکرمه رحمه الله اوضحاک رحمه الله کړې ده چې هغوئ په خندا شو يعنې هغوئ حيران شو. حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چې ډير په ويره کښې ئې اوونيل (١) ابراهيم رحمه الله فرمائي چې مخ ئې واړولو. ددې وجې چې امام محمد بن اسحاق رحمة الله عليه په خپل سيرت کښې فرمائيلي دي. هغه دا چې رسول الله ﷺ وليد بن مغيره وغيره قريشو سره ناست وو چې په دې کښې نضر بن حارث هم راغلو او حضرت نبی کريم ﷺ سره ئې څه خبرې شروع کړې چې په هغې کښې دې لاجواب شو. بيا حضرت نبی کريم ﷺ د قران پاک آيت ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ الخ ئو آيتونو پورې تلاوت کړل. يعنې تاسو اوستاسو معبودان ټول به جهنم ته واچولې شي. بيا حضرت نبی کريم ﷺ دهغه ځائې نه لاړو. بيا لږ وخت پس عبدالله بن زبعرى تميمى راغلو نو وليد بن مغيره هغه ته اوونيل چې نضربن حارث خود ابن عبدالمطلب نه شکست اوخوړلو . او آخر ابن عبدالمطلب مونږ ته او زمونږ معبودانو ته ئې جهنميان اوونيل او لاړو. دهٔ اوونيل که چرې څه وې نو ما به هغه لاجواب کړې وې ، ورشئ او هغه ته اووائې چې هرکله مونږ اوزمونږ معبودان دوزخيان دی نو ددې نه لازميږي چې ټولې فرښتې او حضرت عيسى عليه السلام اوحضرت عزيز عليه السلام هم دوزخيان دی. ځکه چې مونږ خود فرښتو عبادت کوؤ. يهوديان دحضرت عزيز عليه السلام عبادت کوی. نصرانيان دحضرت عيسى عليه السلام عبادت کوی. پدې دکفارو مجلس ډير خوشحاله شو او وې وئيل چې آؤ دا جواب صحيح دې. خو هرکله چې دا خبره نبی کريم ﷺ ته اورسيدله نو حضرت نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې هر هغه سړې چې هغه دغير الله عبادت کوی او هر هغه سړې چې هغه خلقو ته اووائي چې خما عبادت کوئې نو دا عابد اومعبود دواړه جهنميان دی فرښتو خو د خپل عبادت حکم کړې او نه په دې خوشحاله دی . دوئ دهغوئ په نوم اصل کښې دشيطان عبادت کوی. اوهم هغه دوئ ته دشرک حکم کوی اودوئ ئې پوره کوی . نو پدې باندې دا ايت مبارک نازل شو چې ﴿إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ﴾ الخ. يعنې حضرت عيسى عليه السلام او حضرت عزيز عليه السلام او ددوئ نه علاوه چې داخلق دکومو احبارورهبان عبادت کوی او هغوئ پخپله دالله ﷻ عبادت کولو ، شرک نه ويزاره وو ، اوددې نه منع کيدو والاوو ، اودهغوئ نه پس دې گمراهانو جاهلانو لره هغوئ خپل معبودان جوړ کړل . نو دوئ بالکل بې قصوره دی. اودا مشرکان چې دفرښتو عبادت کوی نو ددې په ترديد کښې فرمائي چې ﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَٰنُ وَلَدًا﴾ اوترڅو آيتونو پورې نازل شو. او پدې کښې ئې دهغوئ دباطلې عقيدې پوره ترديد اوکړو. اودحضرت عيسى عليه السلام باره کښې چې دهٔ کوم جواب ورکړې وو او په هغې مشرکان خوشحاله شوی وو داآيتونه نازل شو چې ددې خبرې په آوريدو چې د باطلو معبودانو عبادت کونکی به سره د هغوئ جهنم ته

(١) الطبرى : ٢١/٦٢٧.

داخليږي نو دوئ زر زر د حضرت عيسى ﷺ نوم واخستو او ددې په پيش كيدو ډير خوشحاله شو. او وې وئيل چې اوس مونږ هغه ته شكست وركړو. دوئ ته اووايه چې حضرت عيسى ﷺ هيڅ ا ته هم د خپل عبادت نه وو وئيلى او هغه خو هر وخت د الله ﷻ تابعدار و كنبي وو. او مونږ هغوئ ته ښه نعمتونه وركړي وو. د هغوئ د لاسونو نه مو دنيا ته معجزې اوخودلې او دا د قيامت دليل وو. حضرت ابن عباس ؓ نه ابن جرير كنبي نقل دى چې هر كله مشركانو د خپلو معبودانو د جهنمي كيدو خبره د حضرت نبى كريم ﷺ نه واورېدله نو وې وئيل چې بيا د ابن مريم په حقله څه وائې ؟ نو حضرت نبى كريم اوفرمائيل چې هغه د الله ﷻ بنده اورسول دې. اوس دوئ سره هيڅ جواب پاتې نشو نو وې وئيل چې والله دې غواړي چې څنګه عيسايانو حضرت عيسى ﷺ منلې دې دا شان مونږ هم هغه رب اومنو. الله ﷻ فرمائى چې دا صرف بكواس دې. دوئ هسې ګډې وډې خبرې كوى. (١)

مسند احمد كنبي دى چې يو ځل حضرت ابن عباس ؓ اوفرمائيل چې په قران پاک كنبي يو آيت دې څمانه ددې آيت تفسير چا نه دې پوښتلې. ما ته معلوم نه دى چې هرچا ته ددې معلومات شته دې او كه نه چاته معلومات نشته دې او بيا هم ددې د معلومولو كوشش نه كوى ؟ بيا ئې نورې خبرې اترې شروع كړې تر دې چې مجلس ختم شو او دوئ لاړل. اوس مونږ ته ډير افسوس اوشو چې دا آيت بيا پاتې شو. او مونږ كنبي چا هم ددې متعلق هيچا اونه پوښتل. پدې باندې د ابن عقيل انصارى مولى اووئيل چې كه صبا سحر راغلو نو زه به ترې ددې تپوس كوم. هر كله چې هغه سبا راغلو نو د هغوئ پرونئ خبرې ترې اوپوښتئ شوه چې هغه كوم آيت مبارک دې ؟ دوئ ؓ اوفرمائيل چې واورئ ! حضرت نبى كريم ﷺ يو ځل قريشو ته اووئيل چې هيڅوک داسې نشته دې چې د الله ﷻ نه سوا د هغه عبادت كيږي او په هغې كنبي خير وى. په دې قريشو اووئيل چې آيا عيسى ﷺ به د الله ﷻ عبادت نه كولو ؟ او آيا تاسو حضرت عيسى ﷺ د الله ﷻ بنده اورسول نه منئ ؟ بيا ددې وينا مطلب دا شو چې د الله ﷻ نه سوا چې د چا عبادت كيږي په هغې كنبي خير نشته ؟ نو په دې دا آيتونه نازل شو چې كله د حضرت عيسى بن مريم ﷺ ذكر راغلو نو وې خندل او وې فرمائيل چې هغه د قيامت علم دې. يعنى عيسى بن مريم ﷺ به د قيامت نه مخكنبې راوزى. (٢)

ابن ابى حاتم كنبي دا روايت دروستو جملې نه علاوه ذكر دې. حضرت قتاده فرمائى چې آيا زمونږ معبودان بهتر دى او كه ددوئ، ددې مطلب دادې چې زمونږ معبودان د حضرت محمد ﷺ نه غوره دې خو د خپل ځان د عبادت وينا كوى. د ابن مسعود ؓ په قرات كنبي (امهذا) دې، الله ﷻ فرمائى چې دا ددوئ مناظره نه ده بلكه مجادله ده او مكابره ده. يعنى بې دليله جنګ او بې وجې حجت دې. دوئ په خپله پوهيږي چې نه خو زمونږ دا مطلب دې او نه زمونږ دا اعتراض په دوئ وارد كيږي. په دې وجه خو دې آيت مبارک (ما) دې چې د غير عقل لرونكو د پاره دې. دريم دا چې آيت مبارک خطاب د قريشو كافرانو ته دې چې هغوئ د بتانو او كانړو عبادت كولو او مسيح عبادت كوونكو ته وو چې دا اعتراض په موقع او محل او ګنړلې شى. نو دا صرف جنګ دې. يعنى هغه خبره كوى چې د هغې د صحيح كيدو د دوئ په زړونو كنبي هم يقين حاصل دې. ترمذى وغيره كنبي د رسول الله ﷺ فرمان دې چې يو قوم تر هغه وخت پورې نه هلاكيږي ترڅو چې په هغوئ بې دليله حجت بازى شروع نشى. بيا حضرت نبى كريم ﷺ ددې آيت مبارک تلاوت اوفرمائيلو. (٣)

---

١) الطبرى : ٦٢٥/٢١.
٢) احمد : ٣١٧/١، وهو حسن ، ابن حبان : ٦٨١٧، مختصرا.
٣) ترمذى كتاب تفسيري القران باب ومن سورة الزخرف : ٣٢٥٣، وسنده حسن ،ابن ماجه : ٤٨، احمد: ٢٥٢/٥.

**د هر امت د هلاکت او ګمراهۍ غټ سبب مجادله او د تقدير نه انکار وو:** ابن ابی حاتم کښې دی چې د حديث پاک په شروع کښې هم دادی چې د هرامت دګمراهۍ اوله خبره دخپل نبی ﷺ نه پس د تقدير نه انکار کول دی.[1] ابن جرير کښې دی چې يو ځل حضرت نبی کريم ﷺ دصحابه کرامو ﷺ يو ډله کښې حاضر شو، او هغه وخت کښې هغوئ دقران پاک په آيتونو کښې بحث کولو. حضرت نبی کريم ﷺ په غصه شو او وې فرمائيل چې داسې د الله ﷻ په قران پاک کښې په آيتونو کښې ټکراؤنه شته دې، ياد ساتئ ستاسو پښان دجنګ کولو دې عادت ستاسونه مخکښې خلق هم ګمراه کړی وو. بيا حضرت نبی کريم ﷺ ﴿مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ﴾ تلات اوفرمائيلو[2]. بيا ارشاد اوشو چې حضرت عيسی ﷺ په بندګانو کښې يو بنده دې چې الله ﷻ ورته نبوت اورسالت ورکړې دې. اوهغه الله ﷻ د قدرت يوه نښنه جوړه کړه او بنی اسرائيلو ته ئې ليږلې وو چې هغوئ په دې پوهه شی چې الله ﷻ څه غواړی په هغې قادر دې بيا ارشاد دې که مونږ غواړو نوستاسو جانشين به په زمکه فرښتې جوړ کړو. لکه څنګه چې تاسو دبل جانشين جوړيږئ. داخبره مو په هغوئ مقرر کړې وه. دواړو صورتونو کښې يو مطلب دې حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چې ستاسو په ځائې به مونږ هغوئ په دنيا کښې آباد کړی وې[3]. ددې نه پس فرمائی چې هغه دقيامت نښنه ده. ددې مطلب دادې چې کوم ابن اسحاق رحمه الله بيان کړې دې. خو هغه صحيح نه دې. اوددې نه زياته واضه خبره داده چې حضرت قتاده رحمه الله، حضرت حسن رحمه الله، او حضرت سعيد بن جبير رحمه الله فرمائی چې د (ه) ضمير مرجع عائد دې، حضرت عيسی ﷺ يعنی حضرت عيسی ﷺ د قيامت د نښنو نه يو نښنه دې ځکه چې دمخکښې نه دهغوئ بيان راروان دې اوداهم واضح دی چې دې نه مراد د حضرت عيسی ﷺ دقيامت نه مخکښې نازليدل دی لکه چې الله ﷻ فرمائی چې ﴿وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ﴾ يعنی دهغوئ دمرګ نه مخکښې به اهل کتاب په هغوئ ايمان راوړی. يعنی حضرت عيسی ﷺ دمرګ نه مخکښې به دوئ دقيامت په ورځ په هغوئ ګواه وی، ددې پوره وضاحت ددې دويم آيت مبارک نه کيږی چې په هغې کښې دی چې ﴿وَإِنَّهُ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ يعنی حضرت عيسی ﷺ دقيامت دقائميدو نښنه اوعلامت دې. حضرت مجاهد رحمه الله فرمائی چې دا نښنه ده دقيامت دپاره دحضرت عيسی ﷺ دقيامت نه مخکښې نازليدو هم داشان روايت شوې دې[4] حضرت ابوهريره ﷺ، حضرت ابن عباس ﷺ، حضرت ابوعاليه رحمه الله، حضرت ابومالک رحمه الله، حضرت عکرمه رحمه الله، حضرت حسن رحمه الله، حضرت قتاده رحمه الله، حضرت ضحاک رحمه الله وغيره نه هم او په متواترو احاديثو کښې رسول الله ﷺ خبر ورکړې دې چې دقيامت دورځې نه مخکښې به حضرت عيسی ﷺ دعادل امام او انصاف والاحاکم په حيثيت سره نازليږی. نو تاسو د قيامت راتلل بالکل يقينی اومنئ او په دې کښې هيڅ شک مه کوئی او څه چې تاسو ته کومې خبرې بيانوم نو په هغې کښې ځما اتباع کوئی. او هم دا نيغه لاره ده. هسې نه چې ستاسو ښکاره دښمن تاسو دنيغې لارې نه او ځما داطاعت نه منع نه کړی. حضرت عيسی ﷺ خپل قوم ته فرمائيلی وو چې څه حکمت او نبوت سره تاسو ته راغلی يم. او په دينی امورو کښې چې ستاسو کوم اختلاف دې چې هغه رابرسيره کړم. ابن جرير رحمه الله فرمائی چې دا خبره ډيره ښه او بهتره ده. بيا امام صاحب رحمه الله ددې خلقو ترديد کړې دې چې کوم داخبره کوی چې د (بعض) دلته د (کل) په معنی کښې دې اوددې دليل کښې دلبيد شعرونه پيش

---

[1] ) ابن ابی حاتم.
[2] ) الطبری : ۶۳۰/۲۱.
[3] ) الطبری : ۶۳۰/۲۱.
[4] ) الطبری : ۶۳۲/۲۱.

کوی خو هلته هم دبعضې نه مراد دقائل خپل نفس مراد دې تول نفسونه نه. امام صاحب ﷫ چې شعر کوم مطلب اخستې دې داهم ممکن دې. بیافرمائی چې څه تاسو ته حکم کوم چې په دې کښې دالله ﷻ لحاظ کوئی اودهغه نه ویریږئی. او څما اتباع کوئی، او ما چې څه راوړی دې هغه منئ او په هغې یقین ساتئ چې تاسو ټول خپله اوځه هم دهغه ذات غلام یم. هغه ته محتاج یو اودهغه د در فقیران یو، دهغه عبادت په مونږ ټولو باندې فرض دې. هغه ذات واحد اولاشریک دې. اودا د توحید نیغه لار ده اوس خلق پخپلو کښې ډلې ډلې شوی دی. څینې خلق حضرت عیسی ﷺ ته دالله ﷻ بنده اورسول وائی اوداحقه ډله ده او څینو دهغوئ باره کښې دعوی کړې ده چې نعوذبا الله هغه دالله ﷻ څوئې دې او څینو وئیلی دی چې هغه په خپله الله ﷻ دې. الله ﷻ ددې دواړو دعوؤ نه پاک او اوچت دې. په دې وجه ارشاد دې چې ددې ظالمانو دپاره دقیامت په ورځ خرابی ده. دوئ ته به دقیامت په ورځ سخت دردناک عذاب ورکولې شي او سزاګانې به ورکولې شي.

| | | |
|---|---|---|
| هَلْ يَنْظُرُوْنَ | اِلَّا السَّاعَةَ | |
| ایا دا خلق انتظار کوی | بس دقیامت | |
| دا خلق بس دقیامت د ورځې ............ | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ تَأْتِيَهُمْ | بَغْتَةً | وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۶۶﴾ | اَلْاَخِلَّآءُ | يَوْمَئِذٍۢ | بَعْضُهُمْ |
| چې راشي دوئ ته | ناساپه | او دوئ هیڅ خبر نۀ وی | دوستان به | په دغه ورځ | څینې دهغوئ |
| انتظار کوی | چې ناګهانه ورته راشي | او دوئ پرې خبر هم نه وی | د پرهیزګارانو نه سوا به ټول | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِبَعْضٍ | عَدُوٌّ | اِلَّا الْمُتَّقِيْنَ ﴿۶۷﴾ | يٰعِبَادِ | لَا خَوْفٌ | عَلَيْكُمُ |
| دپاره دځینو | دشمنان وی | بغیر دمتقیانو نه | اے بندګانو زما | نشته یره | په تاسو باندې |
| دوستان په دغه ورځ دیو بل دشمنان شی | ............ اې زما بندګانو نن ورځ په تاسو هیڅ | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْيَوْمَ | وَلَآ اَنْتُمْ | تَحْزَنُوْنَ ﴿۶۸﴾ | اَلَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | بِاٰيٰتِنَا |
| نن ورځ | او نۀ به تاسو | غمژن کیږی | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | په ایتونو زمونږه |
| ویره نشته او نه به درباندې څه غم راشی | دا هغه کسان دی چې زمونږ په ایتونو ئې ایمان راوړی دې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَكَانُوْا | مُسْلِمِيْنَ ﴿۶۹﴾ | اُدْخُلُوا | الْجَنَّةَ | اَنْتُمْ |
| او وو هغوئ | مسلمانان | ورته به اووئیلې شي چې ننوزئ | جنت ته | تاسو |
| اوزمونږ حکم ئې منلې دې | ... تاسو اوستاسو بیبیانې هم جنت ته په خوشحالئ | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَاَزْوَاجُكُمْ | تُحْبَرُوْنَ ﴿۷۰﴾ | يُطَافُ | عَلَيْهِمْ | بِصِحَافٍ |
| او ښځې ستاسو | چې خوشحاله به کړې شئ | ګرزولې کیږی به | په هغوئ باندې | تالی |
| خوشحالئ داخل شئ | په هغې کښې به د سرو زرو د رکیبو اوګلاسونو دور چلیږی | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ ذَهَبٍ | وَّاَكْوَابٍ | وَفِيْهَا | مَا | تَشْتَهِيْهِ | الْاَنْفُسُ |
| دسرو زرو | او پیالئ | او وی به په هغې کښې | هغه څه | چې غواړی هغه | نفسونه |
| ............ | او په هغې کښې به هغه ټول څیزونه ورکولې شي چې څه ته ئې زړه کیږی | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَتَلَذُّ | الْأَعْيُنُ | وَأَنْتُمْ | فِيهَا | خٰلِدُونَ ۝ | وَتِلْكَ الْجَنَّةُ |
| او خوند اخلي تر | سترګي | او تاسو به | په هغې کښې | همیشه اوسئ | او دغه جنت دي |

اوسترګې پرې خوشحالیږي | اوتاسو به په کښې همیشه اوسیږئ | ....... .........اودا هغه جنت دي

| | | | |
|---|---|---|---|
| الَّتِيٓ | أُورِثْتُمُوهَا | بِمَا | كُنْتُمْ |
| هغه اچې | په میراث کښې درکړې شوې دې هغه تاسو ته | په سبب دهغې عملونو | چې وئ تاسو |

چې تاسو ئې دهغه اعمالو په وجې وارثان جوړ کړې شوئ | کوم چې تاسو کړی وو |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَعْمَلُونَ ۝ | لَكُمْ | فِيهَا | فَاكِهَةٌ | كَثِيرَةٌ | مِّنْهَا | تَأْكُلُونَ ۝ |
| چې کول به مو | تاسو لره دي | په دې کښې | میوې | ډیرې | دهغې نه | خورئ تاسو |

............په دې کښې تاسو دپاره ډیرقسمه میوې دی | چې خوراکونه به ترې کوئ

**قوله تعالى:: الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ**

**دقیامت په ورځ به دغیر الله دوستئ په دښمنئ کښې بدله شي** :الله ﷻ فرمائی چې دامشرکان د قیامت انتظار کوئ اودا وائی چې دا بیکاره دې او ددې دراتلو وخت مقرر نه دې . دابه په دوئ باندې په ناخبرکښې ناڅاپه په دې رازی .هغه وخت کښې به دوئ ډیر پښیمانه او ډیر شرمنده وی خوبیا دهغې هیڅ فائده نه وی.دوئ دا قیامت بالکل ناممکن ګنړلې دې او داقیامت نه صرف ممکن بلکه یقني طور سره راتلونکې دې.او په هغه وخت کښې به دهغې نه پس دوئ ته دهیڅ عمل فائده نه وی چې دالله ﷻ نه سوا چې دنورو سره دوستئ وې نو هغه به په دغه ورځ ټولې په دښمنئ بدلې شی . خو چې کومه دوستئ صرف دالله ﷻ دپاره وی هغه بهٔ قائمه وی .لکه څنګه چې حضرت خلیل الله ﷺ خپل قوم ته فرمائیلی ووچې تاسو بتانو سره دوستئ جوړې کړې دی خودا صرف دنیا پورې مختص دی ، قیامت کښې به تاسو دیو بل نه انکار کوئی . بلکه په یو بل به لعنت وائې.اوستاسو ځائې بهٔ جهنم وی . او ستاسوسره به دمدد کولو هیڅوک نه وی .ابن ابی حاتم کښې روایت دې امیر المومنین حضرت علی ﷺ فرمائی چې دوه مومنان خپلو کښې دوستان وی او کله چې دوئ وفات شی او دالله ﷻ د طرفنه ورته دجنت زیرې ورکړې شی نو هغه خپل دوست یادوی . او وائی چې ائې الله ﷻ فلانې سړې څما دوست دې اوهغه به ماته ستا اوستا درسول د اطاعت حکم کولو. اودنیکئ تاکید به راته کولو. اوموږ به ئې د بدئی نه منع کولو. اوماته به ئې دایقین راکولو چې موږ ټول به یوورځ الله ﷻ سره ملاقات کوو. نو ائې الله ﷻ ته هغه په حق لار ثابت قدم اوساتې . او هغه ته هم هغه اوښائې چې څه دې ماته اوخودل . ته دهغه نه هم راضی شې لکه څنګه چې څما نه راضی شوې ئې .
نو دالله ﷻ طرفنه ورته جواب ورکولې شی چې ته بالکل بې فکره اوسه ، هغه لره چې ما څه تیار کړی دی که تا هغه لیدلې وې نو ته به په خندا شوې وې . اوته به نه خفه کیدې .بیا چې کله بل دوست وفات شی اوددوئ روحونه ملاقات اوکړی نو دابه اوونیلې شی چې ستاسو خپلو کښې څه تعلق دې .نو یو بل ته به اووائی چې دا خوڅما ډیر ښه رور وو .اودې خو څما ډیر ښه ملګرې وو .او ډیر غوره دوست مې وو . هرکله چې دوه کافران خپلو کښې دوستان وی او ددوئ نه یو مرشی اودجهنم خبر ورته ورکړې شی نو دهٔ ته خپل دوست رایادشی او وائی به چې فلانې څمادوست وو ، ماته ئې ستا او ستا د رسول د اتباع نه کولو حکم کولو . بدو ته به ئې رابنکلم . اونیکو نه به ئې منع کولم. او ماته به ئې ستا دملاقات یقین نه راکولو.نو څمانه پس ته هغه ته هدایت نصیب مه کړې . چې هغه خوهغه څه اووینی چې څه ما

اوليدل . اوهغه نه دا شان خفه شي لكه څنګه ته ځما نه خفه ئې .بيا كله هغه دويم مړ شي او د دواړو روحونه خپلو كښې يوځائې شي نو دواړو ته بهٔ اوونيلي شي چې تاسو دواړه خپل صفتونه بيان كړئې . نو هر يو به وائي چې دا ځما مشر رور او ډير بد ملګرې وو. اودې ډير بدترين دوست دې .

حضرت ابن عباس ﷺ او حضرت مجاهد رحمه الله او حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چې هره دوستي به د قيامت په ورځ په دښمنۍ كښې بدله شي خود پرهيزګارو خلقو دوستي به په دښمنۍ كښې نه بدليږي .

حضرت ابن عساكر رحمه الله فرمائي چې دوه كسان دالله ﷻ دپاره يو بل سره دوستي كړې وي كه يو په مشرق وي او بل به په مغرب كښې وي خو الله ﷻ به دوئ د قيامت په ورځ يوځائې كړي اودوئ به وائي چې دا هغه كس دې چې ځما ډير خوښ وو.(۱)

**قوله تعالى:: يٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ**

**متقيان به د قيامت په ورځ د هرې ويرې او هيبت نه په امن كښې وی.:** بيا فرمائي چې دې متقيانو ته به دقيامت په ورځ اوونيلي شي چې تاسو د ويرې او هيبت نه لرې يئ اوتاسو په هر امن او راحت كښې يئ .اوداستاسود ايمان اواسلام بدله ده .يعنی باطن كښې يقين او اعتماد اوظاهر كښې په شريعت عمل كول.حضرت معتمر بن سليمان دخپل پلارنه نقل كوی چې دقيامت په ورځ كله چې خلق دقبرونونه راپورته كيږي نوټول به د هيبت اوويرې په حالت كښې وی .هغه وخت به يو آواز كوونكئ آواز لګوی چې ائې ځما بندګانو ! نن ورځ ستاسو دپاره خوشحالي ده اوستاسو دپاره هيڅ ويره نشته دې .اوتاسو دا ټول په ټوله عام اوګنړی او خوشحاله به شي .هلته به يو آواز كوونكئ آواز اولګوی چې دا هغه خلق دی چې هغوئ د زړهٔ دكومې ايمان راوړې وو او ددوئ بدنونو بهٔ نيک كارونه كول. دغه وخت كښې به ټول كلک ايمان والا مسلمانانو نه سوا نور ټول مايوسه شي .بيا به دوئ ته اوونيلي شي چې تاسو د نعمت او سعادت والا خلق يئ اوتاسو جنت ته داخل شئ .سورة الروم كښې ددې تفسير تير شوې دې.دوئ ته بهٔ دځلورو واړو طرفونه ښكلي خوراكونه په ښكلي لوښو كښې پيش كړې شی.او غلمان بهٔ ډک جامونه ګرځوی . ﴿تَشْتَهِيهِ الْأَنْفُسُ﴾ او ﴿تَشْتَهِي الْأَنْفُسُ﴾ دواړه قراتونه شته دې .يعنی دوئ ته به خوشبو والا مزيدار ، ښكلي رنګ والا ،په ښكلي لوښو كښې وركولې شي .

**دادني جنتی درجه او د زړهٔ خواهش پوره كيدل::** حضرت نبی كريم ﷺ فرمائي چې هغه جنتی به ټولو نه روستو جنت ته داخليږي چې دچا درجه ټولو نه كمه وی.دهغه نظر په دومره لرې پورې لرې لكه چې يو سړې يوكال سفر اوكړی ، هغه بهٔ خپلې ډيرې او دسرو زرو محلونه وينی .اوداټول به د رنګ رنګ سامونو نه ډک وی سحر ماښام به دهٔ ته اويا اويا زره ركيبو كښې دبيل بيل شكل اوجدا جدا خوراک وركولې شي.او په هغې كښې به هر يو دهٔ خوښ وی . او د اول نه بهٔ تر آخره پورې دهٔ شهادت برابر او يو شان وی.كه په زمكې ټولوخلقو ته دعوت وركړې نو هغه به ټولو لره كافی شي اوهيڅ كمې به رانشي (۲) .(عبدالرزاق)

ابن ابی حاتم كښې دی چې حضرت نبی كريم ﷺ دجنت ذكر اوفرمائيلو او وې فرمائيل چې جنتی به يو نمړئي واخلي او دهٔ په زړه كښې به خيال راشي چې دا خوراک فلانې قسم وې نو ښه به وه . نو زر به ده هغه نمړئي دهٔ د خوښې خوراک شي . بيا حضرت نبی كريم ﷺ ددې آيت مبارک تلاوت اوكړو(۳).

---

۱) ابن عساكر.

۲) دا روايت مرسل دې.

۳) داروايت منقطع.

مسند احمد کښې دی چې حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چې د ادنی درجې والا جنتی به هم بالاخانه کښې اووهٔ چتونه وی . دې به په شپږم چت باندې وې او دده نه پورته بهٔ اووم چت وی . ددهٔ به ديرش خادمان وی او هغوئ به سحر مانبام ددٔ ته دسرو زرو په لوښو کښې خوراک اوشراب پيش کوی او هر يو کښې به قسم قسم او خوندناک خوراک وی . داول نه تر آخره به ددهٔ اشتها هم هغه شان وی .ده ته به درې سوهٔ د سروزرو پيالواو پتيلو او ګلاسونو کښې د ښښلو څيزونه ورکولې شی .هغه به ديوبل نه ښه وی دې بهٔ اووائی چې يا الله ﷻ ! که ستا اجازت وی نو څه به ټولو جنتيانو ته دعوت ورکړم که ټول په ټوله راشی نو ځما په خوراک کښې به څه کمې رانشی .ددوئ ښځې به بهترينې او غټوغټو سترګو والا حورې وی اوددنيا ښځې به ئې جدا وی . په دوئ کښې به يوه يوه يو ميل فاصله کښې کينی .[1] بيا به ورته اووئيلې شی چې دا نعمتونه ستاد پاره دی او دا به هميشه هميشه دپاره وی . او ته بهٔ دلته هميشه هميشه ئې . نه بهٔ درته مرګ رازی او نه به دلته په څه کښې کمې رازی . اونه بهٔ خائې بدليږی او نه به درته تکليف وی . بيا دوئ ته خپل فضل اواحسان يادوی چې ما په تاسو باندې کړې دې او دا ستاسو دعملونو په وجه دی . ځکه چې هيڅ يو بنده دخپلو عملونو نه بغير جنت ته داخليدلې نشی البته د جنت په درجو کښې به فرق وی او هغه به د نيکو په وجه وی .

ابن ابی حاتم کښې دی چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل جهنميان به دجهنم نه په جنت کښې خپل ځائې وينی نو ډير افسوس به کوی او دوئ به وائی که الله ﷻ مونږ ته هدايت کړې وې نو مونږ به هم نيک جوړشوې وې.اوهر يو جنتی به خپل ځائې جهنم کښې وينی او دالله ﷻ شکر به اداکوی .او وائی بهٔ چې مونږ دا توفيق او قدرت نه لرلو چې په نيغه لار تلې وې که چرې الله ﷻ زمونږ رهنمائی نه وې کړې . دوئ فرمائی چې هرسړی دپاره يو يو ځائې جنت او جهنم کښې جوړ کړې شوې دې.نو کافر به جهنم کښې د سومن دځائې وارث وی او مومن به جنت کښې د کافر د ځائې وارث وی .او فرمان دی چې تاسو دخپلو عملونو په وجه ددې جنت وارثان يئ .دخوراک ذکر کولو نه پس اوس دميوؤ او ترکاريانو ذکر کيږی .دا به دوئ ته په لويه توګه ددوئ د طبيعت مطابق ورکولې شی . دوئ چې څنګه غواړی او څنګه ددوئ خواهش وی نو هغه شان به ورته ملاويږی .غرض دا چې دوئ به دالله ﷻ درضا په کور کښې هميشه هميشه او پوره پوره نعمتونو سره اوسيږی . الله ﷻ دې زمونږ هم نصيب کړی آمين

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ | فِيْ عَذَابِ جَهَنَّمَ | خٰلِدُوْنَ ۝ | لَا يُفَتَّرُ | عَنْهُمْ |
| بيشکه مجرمان خلق | په عذاب ددوزخ کښې | به هميشه وی | کم به نهٔ کړې شی | دهغوئ نه عذاب |
| نافرمانه خلق به هميشه په دوزخ کښې پراته وی | | | ...................... | عذاب به ترې سپکولې نشی |
| وَهُمْ | فِيْهِ | مُبْلِسُوْنَ ۝ | وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ | وَلٰكِنْ |
| او هغوئ به | په هغې کښې | نااميده پراته وی | اواونهٔ کړو ظلم مونږ په هغوئ باندې | وليکن |
| اومايوسه به په کښې پراته وی | ............ | | .............اومونږ پرې هيڅ ظلم نه ووکړې | خودوئ |
| كَانُوْا | هُمُ الظّٰلِمِيْنَ ۝ | وَنَادَوْا | يٰمٰلِكُ | لِيَقْضِ عَلَيْنَا |
| ووه | هغوئ ظالمان | اوآوازونه به کوی هغوئ | اے مالکه | حکم داوکړی په مونږ باندې |
| پخپله (په خان باندې) ظالمان وو | | او دوئ به آواز اوکړی | چې ائې مالکه ! | ستا رب دې زمونږ |

[1] احمد: ۵۳۷/۲، وسنده حسن ، مجمع الزوائد : ٤۰۰/۱۰.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَبُّكَ ط | قَالَ | اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ﴿۷۷﴾ | | لَقَدْ جِئْنٰكُمْ | بِالْحَقِّ |
| رب ستا | هغه به اووائي | بيشكه تاسو به هم دغسي پراته يئ | | راوړي وو مونږ تاسو ته | حق |
| د مرګ فيصله اوكړي | هغه به اووائي چې تاسو به هميشه دلته پراته يئ | مونږ تاسو ته ربښتيني دين درليږلي وو | | | |
| وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَكُمْ | لِلْحَقِّ | كٰرِهُوْنَ﴿۷۸﴾ | اَمْ اَبْرَمُوْٓا | اَمْرًا |
| وليكن | زيات خلق ستاسو | حق لره | نۀ خوښونكي وو | ايا فيصله كړې وه دې خلقو | ديو كار |
| خو په تاسو كښې زيات خلق دحق دين نه بيزاره شول | ايا دوئ دخپلو خانونو په باره كښې څه فيصله كړې ده | | | | |
| فَاِنَّا | مُبْرِمُوْنَ﴿۷۹﴾ ج | اَمْ يَحْسَبُوْنَ | اَنَّا | لَا نَسْمَعُ | |
| پس بيشكه مونږه هم | فيصله كونكي يو | ايا ګمان كوي دوئ | چې بيشكه مونږه | نۀ اورو | |
| خو مونږ هم د دوی په باره كښې فيصله كونكي يو | ايا ددوئ داخيال دې چې مونږ | | | | |
| سِرَّهُمْ | وَنَجْوٰىهُمْ ط | بَلٰى | وَرُسُلُنَا | لَدَيْهِمْ | |
| پټې خبرې ددوئ | او پټې مشورې ددوی | مونږ هر څه اورو | او فرښتې زمونږه | ددوئ سره خواته | |
| ددوئ پټې اود راز خبرې نه اورو؟ | ولې نه ، حالانكه زمونږليږلي(فرښتې)دوئ سره دي | ليكل | | | |
| يَكْتُبُوْنَ﴿۸۰﴾ | | | | | |
| ليكل كوی | | | | | |
| كوی | | | | | |

**قوله تعالى:: اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ﴿۷۴﴾**

**دوزخ او دوزخيانو حشر** پورته دنيكانو خلقو حالات بيان شو، په دې وجه دلته د بدبختو خلقو حال بيانيږي. وائي چې دا به هميشه هميشه دپاره دجهنم په عذابونو كښې ګرفتار وی. يو ساعت به ددوئ په عذابونو كښې كمې نه رازی. او دوئ به دې جهنم كښې نااميده پراته وی. دهرې نيكئ نه به مايوسه شی. مونږ په چا ظلم نه كوؤ بلكه دوئ پخپلو خانونو پخپله ظلم كړې دې. مونږ رسولان اوليږل، كتابونه مو اوليږل، حجتونه مو قائم كړل. خودوئ خپله سركشي او خپل ضد نه پريخودونو دوئ ته دهغې په وجه دا بدله ملاؤ شوه. په دوئ باندې دالله ﷻ ظلم نشته دې اونه الله ﷻ په چا باندې ظلم كوی. دا جهنميان به دجنت داروغه ته آواز كوی. صحيح بخاری كښې دی چې حضرت نبی كريم ﷺ يو ځل په منبر ناست وو او دا آيتونه ئې تلاوت كړل او وې فرمائيل چې دوئ به دمرګ ارمان كوی چې د عذاب نه خلاص شی خود الله ﷻ فيصله شوې ده، چې ﴿لايقضي عليهم فيموتوا ولا يخفف عنهم من عذابها﴾ يعنی نه به دوئ ته مرګ رازی اونه به دوئ نه عذاب كمولې شی. او د الله ﷻ فرمان دې چې ﴿وَيَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَى﴿۱۱﴾ الَّذِيْ يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى﴿۱۲﴾ ثُمَّ لَا يَمُوْتُ فِيْهَا وَلَا يَحْيٰى﴾ يعنی هغه بدبخت به ددې نصيحت نه جدا جدا كړې شی چې په ډير اور كښې به وی بيا به هلته مرګ نه رازی او دوئ به ژوندی پاتې كيږی.

كله چې دجهنم داروغه ته ډير په عاجزئی سره اووائي چې ته الله ﷻ نه زمونږ دمرګ سوال اوكړه نو هغه به جواب كښې اووائي چې تاسو به اوس دلته پراته يئ او مرګ به درته نه رازی. حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چې مكث زر كاله ته وائي. يعنی نه به مری اونه به رغيږی او نه به تيښته كولې شی. بيا به ددوئ غلط كارونه چې كله مونږ حق اوليږلو او هغه مونږ ښكاره كړو نو ددوئ منل خولا څه كوی چې ددې نه ئې نفرت كولو، ددوئ طبيعت دې طرفته نه مائل كيدو. حق او حق والو نه به ئې نفرت كولو. او ددې نه به

نه منع کیدل.هغه خلقو ته مائل وو چې په حق نه وو .اوهغوئ سره ني جوړ برابر وو .نو تاسو خپل نفسونه ملامته کړئې او په خپل ځان باندې افسوس اوکړئې خودده نن افسوس هیڅ فائده نشته دې . بیا فرمائي چې ددوئ مکر او فریب ډیر زیات خراب وو. خومونږ هم دوئ سره هغه اوکړل چې څه دوئ کړی وو .دا دحضرت مجاهد رحمه الله تفسیر دې او ددې شهادت په دې آیت مبارک کښې دې چې﴿وَمَكَرُوا مَكْرًا وَمَكَرْنَا مَكْرًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾) یعنې مکر ني اوکړواومونږ هم ورسره مکراوکړو او دوئ ته معلوم نه وو. مشرکانو دوئ دحق نه منع کولو دپاره رنګ په رنګ حیلې کولې او جوړولې ئې . الله ﷻ هم دوئ په دهو که کښې اوساتل اودهغې وبال اوګناه ددوئ په سرراغله . اوددوئ سترګې بندې پاتې شوې. په دې وجه فرمائي چې ولې ددوئ ګمان دې چې مونږ ددوئ پټې خبرې نه آورو؟ ددوئ داګمان بالکل غلط دې اومونږ ددوئ دهر څه نه واقف یو ، بلکه زمونږ مقرر شوې فرښتې دوئ سره دې چې صرف ګوری بلکه هر څه لیکی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْ | إِنْ كَانَ | لِلرَّحْمٰنِ | وَلَدٌ ۖ | فَأَنَا | أَوَّلُ الْعٰبِدِينَ ۝ | |
| ورته اووایه | که چرې وې | رحمن لره | اولاد | پس زۀ به وې | اول د عبادت کونکونه | |
| (ائې نبی) اووایه که چرې درحمان (الله) اولاد وې انودتولو نه وړاندې به ما دهغه عبادت کولو | | | | | | |
| سُبْحٰنَ | رَبِّ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ | رَبِّ الْعَرْشِ | عَمَّا | | |
| پاکی ده | درب داسمانونو | او دزمکې لره | مالك دعرش لره | دهغه خبرونه | | |
| پاک دې داسمانونو اودزمکې رب چې دعرش مالک دې د هغه ټولو خبرونه چې دوئ ني | | | | | | |
| يَصِفُونَ ۝ | فَذَرْهُمْ | يَخُوضُوا | وَيَلْعَبُوا | | | |
| چې جوړوی ني دا خلق | پس پریږده دوئ | چې مشغوله وی به بحث کښې | اولوبې کوی | | | |
| بیانوی | .........نودوئ په خپلو شغلونو او لوبو کښې پراته پریږده | | | | | |
| حَتّٰى | يُلٰقُوا | يَوْمَهُمُ | الَّذِي | يُوعَدُونَ ۝ | | |
| تر دې پورې | چې ملاقات اوکړی | دورځې خپلې سره | هغه ورځ | چې دکومې نه یرولې کیږی دوئ | | |
| تردې چې هغه ورځ راشی | دکومې چې دوئ سره وعده کولې شی | | | | | |
| وَهُوَ | الَّذِي | فِي السَّمَاءِ | إِلٰهٌ | وَفِي الْأَرْضِ | إِلٰهٌ ۚ | |
| او هغه | هغه ذات دې | چې په اسمان کښې | معبود دې | او په زمکه کښې | هم معبود دې | |
| او الله ﷻ هغه ذات دې چې په اسمانونو کښې هم معبود دې | او په زمکه کښې هم معبود دې | | | | | |
| وَهُوَ الْحَكِيمُ | الْعَلِيمُ ۝ | وَتَبٰرَكَ | الَّذِي | لَهُ | | |
| او هغه دحکمت خاوند دې | او عالم دې | او برکتناك دې | هغه ذات | چې هغه لره ده | | |
| اوهغه د حکمت خاوند او پوهه ذات دې | ............ او الله ﷻ ډیر مبارک ذات دې | | | | | |
| مُلْكُ السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ | وَمَا بَيْنَهُمَا ۚ | وَعِنْدَهُ | | | |
| بادشاهی داسمانونو | او دزمکې | او دهغې چې په منځ ددې دواړو کښې دی | او دهغه سره دې | | | |
| چې داسمانونو اود زمکې اود دواړو په مینځ کښې چې څه دی د ټولو بادشاه دې | | | | | | |

عِلۡمُ السَّاعَةِ ۚ وَاِلَيۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ ۝ وَلَا يَمۡلِكُ الَّذِيۡنَ

علم دقیامت | او خاص هغه ته به | تاسو واپس بوتلي کیږئ | اونه لري اختیار | هغه خدایان

اوهغه ته دقیامت (وخت) معلوم دي |اوتاسوټول به ورته واپس کیږئ | اودوئ چي دالله ﷻ نه سوا

يَدۡعُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِهِ الشَّفَاعَةَ اِلَّا مَنۡ شَهِدَ بِالۡحَقِّ

چي رابلي ئې دوئ | بې دهغه نه | دشفاعت | مګر | هغه څوك | چي ګواهي اوکړي | په حقه سره

دکومو معبودانو عبادت کوي |هغوئ ته دسفارش کولو هیڅ اختیار نشته |خوچا چي دحقي خبرې اقرار اوکړو

وَهُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ ۝ وَلَئِنۡ سَاَلۡتَهُمۡ مَّنۡ خَلَقَهُمۡ

او هغوئ | پوهه لري | او که چرې | تپوس اوکړې ته ددوئ نه | چي چا پيدا کړي دي دوئ

او په دغې پوهه لري | (نوهغوئ به سفارش کولي شي)اوکه ته ددوئ نه تپوس اوکړې چي تاسو چاپیدا کړي یئ

لَيَقُوۡلُنَّ اللّٰهُ فَاَنّٰى يُؤۡفَكُوۡنَ ۝ وَقِيۡلِهٖ

نو اوبه وائي خامخا | چي الله | پس کوم طرفته | ګرځولي کیږي دوئ | اوقسم دې په دې وینا درسول

نو خامخا به وائي| چي الله ﷻ (پیدا کړي یو) | نوبیا دوئ کوم اړخ ته اړولي شي| او الله ﷻ ته د(رسول)

يٰرَبِّ اِنَّ هٰۤؤُلَآءِ قَوۡمٌ لَّا يُؤۡمِنُوۡنَ ۝ فَاصۡفَحۡ عَنۡهُمۡ

چي اے ربه | بیشکه دا خلق | داسې قوم دي | چي ایمان نه راوړي | پس مخ واړوه | ددوئ نه

دا وینا هم معلومه ده |چي ائي ربه (دا) داسې خلق دی چي په هیڅ وجه ایمان نه راوړي| (نوائی نبی)ته ددوئ

وَقُلۡ سَلٰمٌ ؕ فَسَوۡفَ يَعۡلَمُوۡنَ ۝

او اووایه | سلام دې تاسو ته | پس ډیر زر به | پوهه شي دوئ |

نه مخ واړوه | اوو رته اووایه چي زۀ درته سلام کوم| نوزرده چي حقیقت به ورته معلوم شي

قوله تعالى:: قُلۡ اِنۡ كَانَ لِلرَّحۡمٰنِ وَلَدٌ
کره کافران دالله ﷻ اولاد وي نو د جهالت او خباثت انتها شرک دې ..انې نبی ﷺ انه اعلان اوکړه چې فرض ماته په سرتيټولو کښې څۀ ضرورت وو نه به ما هغه دفرمان نه سر اړولو اونه به مې دهغه حکم نه انکار کولو .که چرته داسې وې نو ما به ټولو نه مخکښې منلو او اقرار به مې کولو خو دالله ﷻ شان د انه دې.نه خودهغه څوک هم سر شته اونه دهغه څوک برابر شته دې.یادساتئ چې کوم کلام راشی نو د هغې په واقعه کښې راتلل ضروری نه وی بلکه امکان ئې هم ضروری نه وی . لکه چې دالله ﷻ فرمان دې چې ﴿لَوۡ اَرَادَ اللّٰهُ اَنۡ يَّتَّخِذَ وَلَدًا لَّاصۡطَفٰى﴾ یعنی که الله ﷻ داولاد خواهش لرلونوپه مخلوق کښې به ئې چې څوک خوښ وو هغه به ئې جوړ کړې وې .خودهغه ذات ددې نه پاک اودهغه وحدانيت دشان نه خلاف دی .دهغه قهاريت او غلبه ددې نه خلاف ده .ځینې مفسرینو دعابدین معنی دانکار هم کړې ده.لکه حضرت سفيان ثوری ﷫ صحيح بخاری کښې دی چې عابدين نه مراد دې خائې کښې اول الجاحدين، دې،یعنی اول انکار کوونکی او داد عبد يعبد باب نه دې.اوکه د عبادت په معنی کښې وی نو هغه به د عبديعبد نه وی . ددې شهادت کښې د ا واقعه هم ده چې د يوې ښځې د نکاح نه شپږ میاشتې پس بچې پيدا شو نو حضرت عثمان ﷛ دهغې درجم کولو حکم ورکړو خو حضرت علی ﷛ دهغې مخالفت

اوکړواووې فرمائيل چې دالله ﷻ کتاب کښې دی چې ﴿أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا ۖ وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا ۚ﴾ يعنى دحمل اود پئيو نه دماشوم شوکولو موده دوه نيم کاله ده بل ځائې کښې دی چې ﴿وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ﴾ د دوؤکالو دننه دننه دماشوم دتې نه دشوکولو موده ده. نو حضرت عثمان ﷺ ددې نه انکار اونه کړې شو. او زرئې سړې اوليږلو چې هغه ښځه واپس کړئې .دلته هم لفظ د عبد دې يعنى انکار ئې اونه کړې شو. ابن وهب وائى چې دعبد معنى انکار کول دی .دشاعرپه شعر کښې هم عبد دانکار کولو اونه منلو په معنى کښې دې .خوپدې قول کښې نظر دې .پدې وجه د شرط جواب کښې دا صحيح نه ښکارى ددې دمنلو نه پس به مطلب داوى که درحمان اولاد وې نو اول منکر څه يم. او په دې کښې دکلام ښائست قائم نه پاتې کيږى .خو صرف دومره وئيلې شى چې (ان) دشرط دپاره نه دې بلکه دنفى دپاره دې لکه چې حضرت ابن عباس ﷺ نه نقل دی. نواوس به دکلام مضمون داسې وی چې درحمان اولاد نشته او څه ددې اول گواه يم.

حضرت قتاده ﷫ فرمائى چې دعربو دمحاورې مطابق دې يعنى نه درحمان اولادشته اونه څه دهغه عابد اومنکريم. ابو صخر ﷫ فرمائى چې ددې مطلب دادې چې څه اول نه دهغه عبادت کونکې يم چې دهغه اولاد نشته اوڅه دهغه په توحيد منلو کښې هم ډير مخکښې يم .حضرت مجاهد ﷫ فرمائى چې څه دهغه اولنې عبادت کونکې يم او موحد يم او ستاسو تکذيب کونکې يم .دا دواړه په لغت کښې عابداوعبد اود اول نه زيات نزدې دی په دې وجه داشرط اوجزا ده خو دانامُمکن او محال دی. حضرت سدى ﷫ فرمائى که دهغه اولاد وې نو مابه اول منلې وې چې دهغه اولاد شته خو هغه ذات ددې نه پاک دې، ابن جرير ﷫ داخبره خوښوى اوچې کوم خلق (ان) نافيه بيانوى دهغوئ دخبر ترديد کوى په دې وجه الله ﷻ فرمائى چې دآسمان او زمکې او دټولو څيزونو خالق ددې نه ډير پاک اولړې دې چې د هغه اولاد وى هغه ذات ددې نه پاک دې هغه واحد دې اوصمد دې. دهغه مثل اوهم سر نشته دې. ارشاد دې چې ائې نبى ﷺ! دوئ په خپل جهالت کښې پريږده چې اخته وى. اودوئ پريږده چې د دنيا په لوبو ټوقو کښې مشغول وى. اودې غفلت کښې به په دوئ باندې قيامت رازى. هغه وخت به دوئ ته معلوم شى

**قوله تعالى:: وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ ۚ**

**دالله ﷻ دنورو قدرتونو بيان:** بيا هغه ذات دخپلې بزرگئ اوجلال بيان جارى ساتى. چې دزمکې او آسمان ټول مخلوقات دهغه عبادت کوى او دهغه نه پست او عاجز دی هغه خبير او عليم ذات دې ځنگه چې بل آيت مبارک کښې دی چې په زمکه او آسمان کښې هغه الله ﷻ دې چې دهر پټ څيزاوستاسو دهريو عمل نه خبر دار دې هغه ذات دټولو مالک اوخالق دې .او د ټولو پيداکولو والا اوجوړولو والا دې او د هغه ذات په ټولو حکومت دې .اوهغه ډيربرکت والا ذات دې .هغه عالى شان ذات دټولو عيبونو او نقصانونو نه پاک دې .هغه د ټولو مالک دې، هغه اوچت اوعظمت والا دې، هيڅوک داسې نشته چې دهغه حکم بدل کړى اوهيڅوک داسې نشته دې چې دهغه خوښه بدله کړى هغه ذات په هر څه قادر اوهر يو کاردهغه په قبضه کښې دې د قيامت دراتلو علم صرف هغه ذات ته شته دې دهغه ذات نه سوابل هيچا ته د قيامت دراتلو علم نشته دې ټول خلق به هغه ذات طرفته واپس کيږى. اوهغه ذات بهٔ هر يو ته دخپل عمل بدله ورکوى. بيا ارشاددې چې ددې کافرانو باطل معبودان چې دوئ ئې خپل سفارش يان گڼړى په دوئ کښې يوتن هم دسفارش دپاره نشى راتلئ اونه به دهغوئ شفاعت کار ورکوى دې نه پس استثناء منقطع ده .يعنى چې کوم بنده دحق اقرارکوى او گواه وى او خپله هم بصيرت اوبصارت يعنى علم او معرفت والا ذات دې اودالله ﷻ ذات اودالله ﷻ په حکم به دهغه شفاعت دخلقو دپاره

مفیدوی. که چرته تاسو دوئ نه تپوس اوکړئ چې ددوئ خالق څوک دي ؟نو دوئ به اقراراوکړي چې الله ﷻ،خو دافسوس خبره داده چې خالق دوئ یو مني اوعبادت دنورو کوي .دوئ ېڅي مجبوره اوبې وسه دي اودعقل نه کار نه اخلي .هرکله چې هغه ذات پیداکړو نو ولې دې مونږ دنورو عبادت اوکړو؟ جهالت اوخباثت ئې دومره سوا شوې دې چې سمه اوساده خبره تر مرګه پورې ددې په پوهه کښې رانغله. بلکه دپوهه کولونه پس هم په دې پوهه نشو.په دې وجه په حیرانئ سره ارشاد دې چې دومره منلو نه پس هم خانونه رندوی .بیا ارشاد دې چې حضرت محمد ﷺ خپله داوینا یعني خپل رب ته ئې شکایت اوکړواود خپل قوم تکذیب ئې بیان کړو چې دوئ ایمان نه قبلوی لکه چې بل آیت مبارک کښې دی چې ﴿وَقَالَ الرَّسُولُ يَارَبِّ إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَٰذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا﴾ یعني نبی کریم ﷺ به دالله ﷻ مخکښې دا شکایت کوی چې زما امت داقران پریخودلو.

امام ابن جریر رحمه الله هم دا تفسیر کوی، امام بخاری رحمه الله فرمائي چې د ابن مسعود رضی الله عنه په قرات کښې دی چې ﴿وَقَالَ الرَّسُولُ يَارَبِّ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ﴾ حضرت مجاهد رحمه الله فرمائي چې دخپل نبی ﷺ خبره نقل کوی ، حضرت قتاده فرمائي چې دا ستاسو دنبی ﷺ خبره ده دخپل رب په مخکښې دخپل امت شکایت کوی،ابن جریر رحمه الله د(قیله) دویم قرات دلام په زیر سره هم نقل کړې دې .ددې یو توجیه خوداکیدیشی چې (نسمع سرهم ونجوهم) باندې معطوف دې ، دویم داکه مقدر فعل اوګڼرلې شي یعني ( قال ) مقدر اوګڼرلې شي، دویم قرات یعني د لام په زیر سره چې کله وی نو دا به عطف وی ﴿وَعِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ باندې نو تقدیر به داسې وی چې دقیامت علم اوددې قول علم دهغه سره دې،دسورة په ختمیدو ارشاد فرمائیلې شی چې د مشرانو نه مخ واړوه او ددوئ دبدزبانئ او بد کلامئ جواب مه ورکوئ.بلکه ددوئ د زړونو نرموپه خاطر دوئ سره په قول اوفعل کښې نرمی کوه او ورته وایه چې سلام دې .دوئ ته به هم حقیقت معلوم شي.په دې کښې درب العالمین دطرفنه دمشرکانو دپاره ډیر زبردسته دړکه ده اودا هم اوشوه په دوئ عذاب راغلې دې چې ددوئ نه اخوانشی الله ﷻ خپل دین پورته کړواوخپله کلمه ئې ځلورو واړو طرفونو ته خوره کړه . خپل موحدین او مومنان ئې مضبوط کړل او قوی ئې کړل او بیا ئې دوئ سره دجهاداوجلاوطن کولو احکام ورکړول اودغه شان ئې په دنیا کښې غالب کړل،دالله ﷻ په دین کښې بې شمیره خلق داخل شو اوپه مشرق اومغرب کښې اسلام خور شو ،فالحمدلله ، والله اعلم.

دالله ﷻ فضل وکرم سره د سورة زخرف تفسیر ختم شو

.............................

## دسورة دخان تفسیر

ترمذی شریف کښې دی چې حضرت نبی کریم ﷺ فرمائي چې کوم سړې د شپې سورة حم دخان لولی دهغه دپاره اویازره فرښتې تر سحره پورې استغفار وائی (۱)داحدیث پاک غریب دې اوددې یو راوی .عمرو بن ابی خثعم ضعیف دې.امام بخاری رحمه الله ورته منکر الحدیث وائی.دترمذی شریف په یو بل حدیث پاک کښې دی چې چا داسورة د جمعې په شپه تلاوت کړو نودې سره دهغه ګناهونه معاف کیږی(۲)دا حدیث پاک هم غریب دې او ددې یو راوی ابوالمقدام هشام ضعیف دې اودویم راوی حضرت حسن دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه آوریدل ثابت نه دې، مسند بزار کښې دی چې حضرت رسول

---

[1]) ترمذی کتاب فضائل القران باب ما جاء فی فضل حم الدخان: ۲۸۸۸، شعب الایمان: ۲۴۴۶، کتاب الموضات : ۲۴۸/۱.

[2]) ترمذی حوالا سابق : ۲۸۸۹، شعب الایمان: ۲۴۷۶، .

کریم ﷺ د ابن صیاد په مخکښې خپل زړه کښې یو خبره پټه کړو اوهغه نه تپوس اوکړو چې زما په زړه کښې څه دي ؟ هغه اووئیل چې دخ ، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې بس دې لرې شه. نامراده پاتې شو ، چې څۀ الله ﷺ کوی هغه کیږی ، بیا حضور ﷺ راواپس شو. (۱)

| آیاتونه | | | | رکوع گانې |
|---|---|---|---|---|
| | | سورة الدخان مکية وهي تسع وخمسون اٰياةً وثلاث ركوعات | | |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۵۹ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ۳ |

حٰمٓ ۝ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ

ح م | قسم دې په کتاب بیانونکی باندې | بیشکه نازل کړې دې مونږه دا کتاب |

حم | په دې واضحه کتاب باندې قسم دې | مونږ داکتاب په یوه برکتی شپه کښې

فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ ۝ فِيْهَا يُفْرَقُ

په شپه برکتناکه کښې | بیشکه مونږه یو | خبردارونکی | په دې شپه کښې | فیصله کولې شی |

نازل کړې دې | بیشکه مونږ (د عذاب) نه ویرونکې یو | ...............په دې شپه کښې هره

كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ ۝ اَمْرًا مِّنْ عِنْدِنَا اِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ۝

د هر کار | حکمتناک | په حکم سره | د طرفه زمونږ نه | بیشکه مونږه یو | لیږونکی دیو رسول |

د حکمت معامله زمونږ په حکم سره فیصله کیږی | او مونږ د دې حکمونو الیږونکی یو |

رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝

د پاره د رحمت | د طرفه د رب ستا نه | بیشکه هغه | هم هغه اوریدونکې | د هر څه نه خبر دې |

دا ستا د رب مهربانی ده | ............بیشکه هغه هر څه اوری | او په هر څه پوهه دې

رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا اِنْ كُنْتُمْ

چې رب د اسمانونو او د زمکې دې | او د هغې چې په منځ د دې دواړو کښې دی | که يئ تاسو |

د اسمانونو او د زمکې او د دې په مینځ کښې چې څه دی د ټولو رب دې | که تاسو پرې

مُّوْقِنِيْنَ ۝ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ

یقین کونکی | نشته لائق د عبادت | مګر هم هغه دې | چې ژوندی کول کوی | او مړه کول کوی |

یقین کوئ | د هغه نه سوا بل هیڅوک د عبادت لائق نشته | هم هغه ژوندي کول کوی او مړه کول کوی

رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ۝

رب ستاسو دې | او رب د پلارانو ستاسو | ړومبنو دې |

ستاسو او ستاسو د پلار نیکه ټولو رب دې |

---

(۱) البزار : ۳۳۹۹، طبراني : ٤٦٦٦ .

**قوله تعالى:: فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ**

**شب قدر په رمضان کښې دې په شعبان کښې نه::** الله ﷻ بيان کوی چې دا عظيم الشان قرآن پاک په ډيره برکت والا شپه کښې يعنی دليلة القدر په شپه کښې نازل شوې دې . لکه چې ارشاد دې چې ﴿إِنَّآ أَنزَلۡنَٰهُ فِي لَيۡلَةِ ٱلۡقَدۡرِ﴾ مونږ دا قران پاک دليلة القدر په شپه نازل کړې دې . اودا شپه په رمضان المبارک کښې ده، لکه چې يو بل آيت مبارک کښې دی چې ﴿شَهۡرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلۡقُرۡءَانُ﴾ درمضان مياشت هغه مياشت ده چې په دې کښې قران پاک نازل شوې دې .سورة بقرة کښې ددې پوره تفسير تير شوې دې په دې وجه دلته ئې د دوباره بيانولو ضرورت نشته دې .ځينې خلقو دا هم وئيلی دې چې هغه مبارکه شپه چې په هغې کښې قران پاک نازل شوې دې هغه شپه د شعبان پنځلسمه شپه ده .خو ددې قول هډو دليل نشته دې .ځکه چې دقران پاک نص نه دقران کريم په رمضان کښې نازليدل ثابت دې او چې په کوم حديث پاک کښې دا روايت دې چې په شعبان کښې تربل شعبان پورې ټول کارونه مقررولې شی تر دې چې نکاح او اولاد او مرګ کيدل هم ، هغه حديث پاک مرسل دې .او داسې احاديث د قرانی نص معارضه نشی کولې .مونږ د خلقو خبرداری دپاره يو يعنی دوئ ته خيراو شر،نيکی اوبدی ښايو چې په مخلوق حجت ثابت شی .او خلق شرعی علم حاصل کړی .دې شپه کښې هرمحکم کار کولې شی.يعنی د لوح محفوظ نه کاتبانو فرښتو ته حواله کړې شی . داټول اهم کارونه لکه عمر ، روزې ، وغيره ټول په دې شپه کښې مقررولې شی . د حکيم معنی محکم او مضبوط ده چې بدليږی نه . هغه ټول زمونږ په حکم کښې دی مونږ درسولانو ليږونکی يو چې ددې رحمت کوونکئ دقران پاک نازليدو والا او درسولانو راليږونکئ هغه الله ﷻ دې چې دآسمان او زمکې اوټولو څيزونو مالک دې او دټولو خالق دې . که تاسو چرې يقين کوئی نومونږ سره ددې باور درکولو ډير کافی وجې موجود دی . بيا ارشاد دې چې برحق معبود صرف هغه دې چې دهغه نه سوا بل څوک دعبادت لائق نشته دې . دهريو مرګ او ژوند دهغه په لاس کښې دې . ستاسو او ستاسو نه دمخکښې ټولو پالونکې دې . ددې آيت مبارک په شان په دې آيت کښې هم دی چې ﴿قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّي رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيۡكُمۡ جَمِيعًا﴾ يعنی ته اعلان اوکړه چې ائې خلقو زۀ تاسو ټولو ته د الله ﷻ رسول يم .دهغه الله ﷻ چې دزمکې اوآسمان باشاهی دهغه ده اودهغه نه سوابل څوک معبود نشته،اوهغه ژوندی کول او مړۀ کول کوی .

| | | |
|---|---|---|
| بَلۡ هُمۡ | فِي شَكّٖ | |
| | | ا بلکه دا خلق ا په شک کښې دی ا |
| | | خو دا خلق په شک کښې پراته دی |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَلۡعَبُونَ ۝ | فَٱرۡتَقِبۡ | يَوۡمَ | تَأۡتِي ٱلسَّمَآءُ | بِدُخَانٖ مُّبِينٖ ۝ | |
| لوبې کوی ا | پس انتظار کوه ا | دهغه ورځ ا | چې راشی آسمان ا | دلوګی ښکاره سره ا | |
| په لوبو کښې اخته دی ا نود هغې ورځې انتظار کوه ا چې آسمان به په ښکاره لوګی سره راشی. | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَغۡشَى | ٱلنَّاسَ | هَٰذَا عَذَابٌ أَلِيمٞ ۝ | رَّبَّنَا | ٱكۡشِفۡ |
| چې ورخوريږی به ا | په خلقو ا | دا عذاب دئ درناک ا | اے ربه زمونږه ا | لرې کړه زمونږ نه ا |
| خلق به ټول پټ کړی ا.........دغه بۀ ډير دردناک عذاب وی ا(دوی به وائی) ائې زمونږ ربه ا دا عذاب | | | | |

عَنَّا الْعَذَابَ اِنَّا مُؤْمِنُوْنَ۝ اَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى

عذاب | بیشکه مونږ | ایمان راوړنکي یو | څرنګ به فائده مندشي | دپاره ددوئ نصیحت |

لرې کړه | مونږ یقین کونکی یو | ............ ............ دوئ به کله نصیحت قبول کړی

وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ۝ لا ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوْا

او حال دا چې راغلې دوئ ته | رسول ښکاره کونکې | بیا اوګرزیدل دوئ | دهغه نه | اووې وئیل |

حال دادې چې واضحه بیان کونکې پیغمبر ورته راغلې دې | نود دوئ نه یې مخ اوګرځولو

مُعَلَّمٌ مَّجْنُوْنٌ۝ اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا

ښودنه شوی ده دهٔ ته | لیوني دې | بیشکه مونږه | لرې کونکی یو | دعذاب | لږه موده |

اوذائې اووئیل | چې دهٔ ته زده کړه شوې ده | لیوني دې | مونږ به دا عذاب د لږې مودې دپاره لرې کړو

اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ۝ يَوْمَ نَبْطِشُ

بیشکه تاسو | دوباره کونکی یئ دکارونو خپلو | په کومه ورځ | چې مونږ نیول کوؤ |

خوتاسو خپل زوړ حالت ته ګرځیدونکې یې | ............ په کومه ورځ چې به مونږ

الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى ج اِنَّا مُنْتَقِمُوْنَ۝

نیول لوئ | بیشکه مونږه | بدل اغستونکی یو |

سخت نیول اوکړوا مونږ خامخا بدله اخستونکې یو |

قوله تعالى:: يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ۝

لوګې په کافرانو. فرمائی چې حق راغلو او دوئ په شک کښې پراته دی او په لهولعب کښې اخته دی. دوئ دهغې ورځې نه خبر کړه چې په هغې کومه ورځ به په آسمان سخت لوګې راشی مسروق رحمه الله فرماتی چې مونږ یو ځل دکوفې یو مسجد ته لاړو نو ما اولیدل چې یو سړې ناست دې قصې کوی. فرمائی چې په دې آیت مبارک کښې دکوم لوګی ذکرشوې دې دهغې نه مراد هغه لوګې دې چې دقیامت به ورځ به دمنافقانو په غوږونو او سترګو اچولې شی اود مومنانو دپاره به د زکام په شان وی. مونږ چې کله دهغه نه واپس شو او حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته مو ددې ذکر اوکړو نو دوئ ملاست او بې تابه وو او بیا کیناستل اووې فرمائیل چې الله ﷻ خپل نبی ﷺ ته فرمائیلی دی چې اووایه چې زه ستا نه په دې څه بدل نه اخلم او زه تکلیف ورکونکې نه یم. دا هم علم دې چې کله یو انسان په یو څیز نه پوهیږی نو دادې اووائی چې الله ﷻ ته علم دې، واورئی چې زه تاسو ته ددې ایت مبارک صحیح مطلب واضح کوم هرکله چې قریشو اسلام قبلولو کښې ډیر وخت تیر کړو او حضرت نبی کریم ﷺ ته ئې تکلیفونه ورکول شروع کړل نو حضرت نبی کریم ﷺ دوئ ته بددعا اوکړه چې دیوسف علیه السلام دزمانې په شان قحط راغلو او مرداری خوړل شروع شوه. او آسمان طرفته ئې سترګې نیولې وې. نو دلوګی نه سوا ورته بل څه نه ښکاریدل. یو روایت کښې دی چې دلوګی په وجه به په دوئ سر ګرځیدو: کله چې به ئې آسمان

طرفته اوکتل نو مینځ کښې به ورته یو لوګي ښکاریدو[1] ددې بیان په دې دوه ایتونو مبارکو کښې دې بیا خلق دې نه پس دنبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو اود خپل هلاکت شکایت ئې اوکړو. نو رسول الله ﷺ ته په دوئ ترس راغلو او حضرت نبی کریم ﷺ الله ﷻ ته سوال اوکړو نو باران اوشو ددې بیان راتلونکی آیت مبارک کښې راروان دې. خو کله چې عذاب لرې شو نودوئ بیا کفر شروع کړو ددې نه معلوم شو چې دا ددنیا عذاب دې ځکه چې دآخرت عذاب نه لرې کیږی اونه ختمیږی.

**پنځه ځیزونه واقع شوی دی:** دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه قول دې چې پنځه څیزونه تیر شوی دی① دخان ② قمر ③ روم ④ بطشه او⑤ لزام.([2]) (صحیحین). یعنی د آسمان نه لوګي راتلل د رومیانو خپل شکست نه پس فتح موندل. د سپوږمئ دوه ټکړې کیدل. دبدر جنګ کښې دکافرانو ماتې خوړل او نیول. او دانښتونکی عذاب نه مراد دبدر په ورځ کښې جنګ دې حضرت ابن مسعود رضی الله عنه، حضرت نخعی رحمه الله، حضرت ضحاک رحمه الله، حضرت عطیه عوفی رحمه الله، وغیره داسې وائی([3])، او ابن جریر هم ورته ترجیح ورکوی. دعبدالرحمان او اعرج نه روایت دې چې دا دمکې دفتح په ورځ اوشو دا خبره ډیره غریبه بلکه منکره ده.

**دقیامت لوګي:** اوځینې بزرګان وائی چې د انه دې تیر شوې. بلکه دا به قیامت ته نزدې رازی. اول حدیث پاک تیر شوې دې. کله چې حضرت نبی کریم ﷺ تشریف راوړو اوحضرات صحابه کرام رضی الله عنهم د قیامت ذکر کولو. نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ترکومې لس نښې ښکاره شوې نه وی نو قیامت به نه رازی. دنمر دمغرب نه را ختل، لوګي، یاجوج ماجوج، راوتل، د حضرت عیسی علیه السلام نازلیدل، ددجال راتلل، مشرق او مغرب کښې اوجزیره کښې خسف کیدل، دعدن نه اور راوتل چې خلق به راجمع کوی. چرته چې دوئ شپه تیروی نو هغه به ورسره وی، او چرته چې د غرمې اوده کیږی نوهغه به ورسره وی([4]) (مسلم) بخاری شریف اومسلم شریف کښې دی چې رسول الله ﷺ خپل زړه مبارک کښې دابن صیاد نه ﴿فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ﴾ پټ کړواو ورته ئې اوونیل چې اووایه چې څما په زړه کښې څه دی؟ نوهغه اوونیل چې دخ نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې برباد شې چې ددې نه مخکښې نه خې([5]) په دې کښې هم یو اشاره ده چې دهغې لا انتظار دې اودا یو راتلونکې څیز دې. ځکه چې ابن صیاد به د کاهنانو په شان ځینې دزړونو خبرې خودلې. اوددې دعوی ئې کوله نو حضرت نبی کریم ﷺ خلق ددهٔ دحالت نه خبر کړل چې دهٔ سره شیطان دې، کلام پټوی اودې ددې نه زیات هیڅ نشی ونیلې.

**دقیامت نخښې:** ابن جریر کښې دی چې حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چې دقیامت اولنۍ نخښې دادی (۱) ددجال راتلل (۲) دحضرت عیسی علیه السلام راتلل (۳) دعدن دمینځ نه اور راوتل چې خلق به محشر طرفته شړی. دغرمې د آرام کولو په وخت کښې به هم ورسره وی اودشپې په وخت کښې به هم ورسره وی او داوده کیدو په وخت کښې به هم دوئ سره وی. (۴) اولوګي راتلل. حضرت حذیفه رضی الله عنه تپوس اوکړو چې یارسول الله ﷺ! لوګي څنګه؟ نو حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارک اولوستلو اووې فرمائیل چې د

---

[1]) صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة الدخان باب (( یغشی الناس هذا عذاب الیم . )) . ۴۸۲۱، صحیح مسلم ۲۷۹۸، ترمذی : ۳۲۵۴.

[2]) صحیح بخاری حوالا سابق : ۴۸۲۰، صحیح مسلم:۲۷۹۸

[3]) الطبری ۱۶/۲۲.

[4]) صحیح مسلم کتاب الفتن باب فی الایات التی تکون قبل الساعة: ۲۹۰۱. مسند الحمید : ۸۲۷، احمد:۶/۴

[5]) صحیح بخاری کتاب الجنائز باب اذا اسلم الصبی فمات هل یصلی علیه :۱۳۵۴. صحیح مسلم: ۲۹۳۰.

الوګې به څلوېښت ورځې وی او مسلمانانو باندې به د نزلې په شان وی، او کافران به بې هوشه او بد مست کوی، ددوئ د سږمو او غوږونو نه به د اسې لوګې راوزی. که چرې دا معنی صحیح وی نو بیاد دخان په مقرر کیدو کښې هیڅ خبره پاتې نشوه او نه پاتې کیږی خو ددې حدیث پاک د صحت ګواهی نشو ورکولې. ددې راوی رواد نه محمد بن خلف عسقلانی سوال اوکړو چې آیا د سفیان ﷺ خپله داحدیث پاک آوریدلې دې، نو وې فرمائیل چې نه. نو بیا ته څنګه دا بیانوې؟ نو وی فرمائیل چې داخو ما نه دې بیان کړې. څه خلق راغلل او دا حدیث پاک ئې بیان کړو او بیا لاړل او ځما په نوم ئې دا بیانول شروع کړل. هم دا خبره ده چې دا حدیث پاک بالکل موضوعی دې. حضرت ابن جریر دا څلور ځایونو کښې راوړې دې، او دې کښې ډیر منکرې خبرې دی، خاص کر د مسجد اقصی بیان کښې چې د سورة بنی اسرائیل په شروع کښې دی، والله اعلم.

یو بل حدیث پاک کښې دی چې ستاسو رب تاسو د دریو څیزونو ویروی. لوګې چې د مؤمنانو د پاره به د زکام پشان وی او د کافرانو ټول بدن به پړسوی. او د هغوئ د هر اندام نه به لوګی راوزی. دابة الارض او دجال ددې سند ډیر ښه دې. حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چې لوګې به خور شی. مومن د پاره به دا د زکام په شان وی او د کافرانو د هر اندام نه به لوګې راوزی. دا حدیث مبارک د حضرت ابو سعید خدری ﷺ قول سره روایت شوې دې او د حضرت حسن په خپل قول سره هم روایت شوې دې. حضرت علی ﷺ فرمائی چې دخان تیر شوې نه دې بلکه د ابه رازی. د حضرت ابن عمر ﷺ نه هم د لوګی په حقله ددې پورته حدیث پاک په شان روایت شوې دې. ابن ابی ملیکه فرمائی چې څه یو ورځ سحر حضرت ابن عباس ﷺ ته ورغلم، هغوئ او فرمائیل چې بیګاه څه بالکل نه یم اوده شوې. ماتپوس او کړو چې ولې؟ هغوئ او فرمائیل چې ما د خلقونه واوریدل چې د لکئ والا ستورئ راختلې دې. نو ماسره ویره شوه چې هسې نه هغه دخان نه وی نو په دې وجه مې ترسحره پورې سترګه پټه نه کړه. ددې سند صحیح دې او د حبر الامت ترجمان القران حضرت ابن عباس ﷺ سره صحابه کرام او تابعین هم دی او مرفوع احادیث هم شته دې چې په هغې کښې حسن او هر قسم شته او هغې نه ثابتیږی چې دخان یو علامت دې چې راتلونکې دې او د قران پاک ظاهری لفظونه هم ددې ظاهر تائید کوی ځکه چې قران کریم دې ته واضح ښکاره لوګې وئیلې دې چې هر سړې به ئې وینئ او د لوږې د لوګی سره ددې تعبیر کول ډیر صحیح نه دې. ځکه چې هغه یو خیالی څیز دې. د لوږې او تندې په وجه د بنده د سترګو په وړاندې یو لوګې شان ښکاره کیږی چې په اصل کښې لوګې نه وی او د قران پاک الفاظ دا دی چې ﴿دُخَانٍ مُّبِيْنٍ﴾ بیان فرمائی چې هغه به خلق پټ کړی وی. داهم د حضرت ابن عباس ﷺ د تفسیر تائید کوی ځکه چې د لوږې لوګې خو صرف د مکې خلق پټ کړی وو. ټول خلق نه، بیا فرمائی چې دا غمناک عذاب دې یعنی دوئ ته به د داسې وئیلې شی. لکه چې یو بل آیت مبارک کښې دی چې ﴿يَوْمَ يُدَعُّوْنَ﴾ په کومه ورځ چې دوئ جهنم ته ورداخل کړې شی چې دا هغه اور دې چې تاسو به دروغ ګنړلو. یا دا مطلب دې چې هغوئ به خپله یو بل ته داسې وائی. هرکله چې کافران اووینی نو د الله ﷻ نه به د هغې دلرې کیدو دعا کوی لکه یو بل آیت مبارک کښې دی چې ﴿وَلَوْ تَرٰۤى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ﴾ یعنی کاش چې تاسو دوئ لیدلې وې چې کله دوئ اور سره اودرولې شی نو وائی به چې کاش مونږ دنیا ته واپس کړې شو او د خپل رب آیتونو به دروغ او نه ګنړو. او ایمان به قبول کړو. یو بل آیت مبارک کښې دی چې خلق ویروه او خبردار ئې کړه چې په کومه ورځ به په هغوئ زمونږ عذاب رازی.

**قوله تعالی:** رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ

**دعذاب راتلو په وخت کښې دکافرانو فریادونه**: په هغه ورځ به ګناهګار وائي چې ائي زمونږ پروردګاره مونږ ته مهلت راکړه مونږ به ستا په آواز لبیک اووایو اوستا رسولانو پسې به روان شو. دوئ خائې کښې داویلي کیږي چې دوئ لره نصیحت قبلول چرته دې؟ دوئ ته خو ښکاره رسولان راغلي وو اوهغوئ ورته ښکاره احکام واضح کړي وو. اودهغې منل خو لا څه کوې چې دې دهغې پرواه هم نه کوله. بلکه دوئ هغه دروغ ګڼړل. دهغې تعلیم ته ئې غلط وئیل او صفا ئې اوئیل چې داخو تاته خودلې شوې دې ولې ته لیونې شوې وې څه؟ لکه یو بل آیت مبارک کښې دی چې په هغه ورځ به انسان نصیحت حاصلوی خو په هغه ورځ به نصیحت چرته وی؟ بل ځائې کښې ارشاد دې چې ﴿وَقَالُوٓا اٰمَنَّا بِهٖ ۚ وَاَنّٰى لَهُمُ التَّنَاوُشُ مِنْ مَّكَانٍ بَعِیْدٍ﴾ یعنې په هغه ورځ چې عذاب اووینې نو بیا به ایمان راوړل بې فائدې وی.

**د ﴿اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ﴾ مطلب**: بیا ارشاد کولې شی که مونږ عذاب لرې کړو اوتاسو دپاره دنیا ته اولیږلې شی نوتاسو به بیاهم هغه شان عملونه کوئې چې کوم مو ددې نه وړاندې کول لکه چې فرمائی چې ﴿ وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِّنْ ضُرٍّ﴾ یعنی که مونږ په دوئ رحم اوکړو اودا بدی ترې لرې کړ و نو بیا به دوئ پخپله سرکشئ کښې مشغول شي او لکه چې فرمائی ﴿وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ﴾ یعنی که دوئ واپس کړې شی نوبیا به هم هغه نافرمانئ کوی. اوتاسوبه دروغژن ګڼړلی. دویمه معنی داده که د عذابونو په وجه اود عذاب راتلونه پس هم مونږ دوئ ته لږ ایسار شو نو بیا به هم دوئ دخپل جهالت نه او ضلالت نه منع نه شی. ددې نه دانه معلومیږی چې عذاب به دوئ ته اورسی او ګنی دوئ نه به هغه لرې کړې شی. لکه چې د حضرت یونس ﷺ قوم ته الله ﷻ فرمائی چې دیونس ﷺ قوم چې کله ایمان قبول کړو نو مونږ هغوئ نه عذاب لرې کړو. ګویادوئ باندې لا عذاب نه ووشروع شوې خودهغې اسباب موجود وو. اودوئ ته د الله ﷻ عذاب رارسیدلې وو. اوددې نه دا هم معلومیږی چې هغوئ د خپل کفر نه مخ اړولې وو. اوبیا هغې طرفته لاړل. څکه چې حضرت شعیب ﷺ اوپه هغه ایمان راوړلو والا خلقو ته چې کله خپل قوم اووئیل چې یا خو تاسو زمونږ ښار پریږدئی یا زمونږ مذهب قبول کړئې. نودې جواب کښې دالله ﷻ رسول اوفرمائیل اګر چې مونږ دې ته بد ګورو چې کله الله ﷻ مونږ ته نجات راکړې دې او بیا هم که مونږ ستاسو دین ته درغلو نوزمونږ نه زیات دروغژن اوپه الله ﷻ بهتان تړلو والا به بل څوک نه وی؟ ظاهره ده چې حضرت شعیب ﷺ ددې نه مخکښې په کفر کښې قدم نه وو ایخودې. اوحضرت قتاده ﷫ فرمائی چې تاسو واپس کیدونکې یئ، ددې مطلب دادې چې دالله ﷻ عذاب طرفته واپس کیدل دی. دسختو نیولو نه مراد دبدر جنګ دې. حضرت ابن مسعود ﷛ او دوئ سره هغه ډله چې دخان تیر شوې ګڼړی نوهغوئ بطشه معنې هم داکوی. او یوې ډلې حضرت ابن عباس ﷛ او حضرت ابی بن کعب ﷛ نه دا نقل کړې دی، نو دا مطلب هم کیدیشی. په ظاهره خودا معلومیږی چې ددې نه مراد دقیامت په ورځ نیول دی. اګر چې د بدر په ورځ نیول دکافرانو دپاره سخته ده، ابن جریر کښې دی چې حضرت ابن عباس ﷛ فرمائي چې هرڅوکه حضرت ابن مسعود ﷛ دادبدر ورځ ګڼړی خو ښما په نزد ددې نه مراد دقیامت ورځ ده اوددې سندوه صحیح دی. حضرت حسن بصری ﷫ او حضرت عکرمه ﷫ نه هم په دواړو آیتونو کښې زیات صحیح روایت هم دادې، والله اعلم.

| | |
|---|---|
| | **وَلَقَدْ فَتَنَّا** |
| | او په آزمینت کښې اچولی ووه مونږه |
| | اومونږ ددې نه مخکښې د ........ |

قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَآءَهُمْ رَسُوْلٌ كَرِيْمٌ ﴿۱۷﴾ اَنْ اَدُّوْٓا

مخکښې ددې نه | قوم دفرعون | او راغې هغوئ ته | يو رسول شريف | چې حواله کړئ |

فرعون په قوم امتحان کړې وو | او هغوئ ته يو عزتمند پيغمبر راغلې وو | چې دالله ﷻ

اِلَيَّ عِبَادَ اللّٰهِ ۭ اِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿۱۸﴾ وَّاَنْ لَّا تَعْلُوْا

ماته | بندګان دالله | بيشکه زهٔ | ستاسو دپاره | رسول امانتدار يم | او دا چې سرکشي مهٔ کوئ |

بندګان ماته حواله کړه | زه تاسو ته راليږلې شوې امانت دار پيغمبر يم | اودا چې تاسو د

عَلَى اللّٰهِ ۚ اِنِّيْٓ اٰتِيْكُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۹﴾ وَاِنِّيْ

په مقابله دالله کښې | بيشکه زهٔ | راوړم تاسو ته | دليل ښکاره | او بيشکه ما

الله ﷻ په مقابله کښې سرکشي مه کوئ | زه تاسو ته يو ښکاره دليل پيش کوم | او بيشکه زه

عُذْتُ بِرَبِّيْ وَرَبِّكُمْ اَنْ تَرْجُمُوْنِ ﴿۲۰﴾ وَاِنْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا

پناه اغستلې ده | درب زما او درب ستاسو سره | چې تاسو سنګسار کړئ ما | اوکه تاسو خبره نهٔ منئ

ستاسو او خپل رب سره د دې خبرې نه پناه غواړم چې تاسو ما په کاڼړو اولئ|اوکه چرې تاسو په ما ايمان نه راوړئ

لِيْ فَاعْتَزِلُوْنِ ﴿۲۱﴾ فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ

زما | نو خان ساتئ زما نه | پس اواز اوکړو هغه | رب خپل ته | چې بيشکه دا خلق | يو قوم دي

نو زما نه لرې شئ| ....... بيا موسى ﷺ خپل رب ته دعا اوکړه | چې دا خو ډير لوئې

مُّجْرِمُوْنَ ﴿۲۲﴾ فَاَسْرِ بِعِبَادِيْ لَيْلًا اِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ ﴿۲۳﴾

مجرم | پس روان کړه | بندګان | زما | دشپې | بيشکه په تاسو پسې به خلق درځي |

مجرمان دي|نو (اې موسى) ته زما بندګان دشپې (دمصر) نه اوباسه ارالاندې کولې به شئ

وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا ۭ اِنَّهُمْ جُنْدٌ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۲۴﴾ كَمْ تَرَكُوْا

او پريږده درياب | په حال خپل | بيشکه دوئ | لښکر دي | ډوبيدونکي | څومره ډير پريښودل هغوئ

او درياب غلې په قلاره پريږده | ددوئ ټول لښکر به ډوبيږي | نو دغه خلقو څومره

مِنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿۲۵﴾ وَّزُرُوْعٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ ﴿۲۶﴾ وَّنَعْمَةٍ

د باغونو | او چينو نه | او دفصلونو نه | او دخايونو شاندارونه | او نعمتونه |

باغونه | .... اوچينې | او فصلونه او ښائسته ښائسته محلونه | او نور ډير نعمتونه چې پريښودل

كَانُوْا فِيْهَا فٰكِهِيْنَ ﴿۲۷﴾ كَذٰلِكَ ۣ وَاَوْرَثْنٰهَا

چې وو هغوئ|په هغې کښې|مزې کونکي|اداسې شو انجام دهغوئ|اوپه ميراث کښې ورکړل مونږ دغه څيزونه

کوم کښې چې دوئ خوشحالي کونکي وو | هم دغسې اوشوه |او مونږ يو بل قوم دهغې ټولو څيزونو

قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ﴿۲۸﴾ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ وَمَا كَانُوْا

قوم | بل ته | پس اونهٔ ژړل | په هغوئ باندې | آسمان | او زمکې |او نهٔ وو هغوئ

مالک کړو | .......نو نه خو پرې آسمان او زمکې ژړل اوکړه | او نه ورته مهلت

| | | | |
|---|---|---|---|
| مُنظَرِينَ | وَلَقَدْ نَجَّيْنَا | بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ | مِنَ الْعَذَابِ |
| مهلت ورکړې شوی | او بیشکه خلاصي ورکړو مونږه | بني اسراءیلو ته | دعذاب |

ورکړې شوا | او مونږ بني اسرائیل دسپکونکي عذاب نه خلاص کړل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْمُهِينِ | مِن فِرْعَوْنَ | إِنَّهُۥ كَانَ | عَالِيًا | مِّنَ الْمُسْرِفِينَ |
| سپکونکي نه | (یعني) دفرعون نه | بیشکه هغه وو | اوچت سرکشه | دحد نه اوړیدونکي خلقو کښي |

یعني دفرعون نه | او هغه ډیر سرکشه وو | د حد نه وړاندي تیریدنکي وو .........

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَقَدِ اخْتَرْنَٰهُمْ | عَلَىٰ عِلْمٍ | عَلَى الْعَٰلَمِينَ | وَءَاتَيْنَٰهُم |
| او بیشکه غوره کړي وو مونږه هغوئ لره | په علم سره | په خلقو دزماني باندي | او ورکړي مونږ هغوئ ته |

او مونږ په خپل علم سره بني اسرائیلو ته په ټول مخلوق باندي فضیلت ورکړوا او مونږ هغوئ

| | | |
|---|---|---|
| مِّنَ الْءَايَٰتِ | مَا فِيهِ | بَلَٰٓؤٌا مُّبِينٌ |
| دنښو نه هغه | چي په هغې کښي | آزمیښت ښکاره وو |

ته داسي نښي ورکړي | چي په کښي ښکاره امتحان وو |

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ**

**دقبطیانو انجام**: ارشاد کیږی چي دي مشرکانو نه مخکښي دمصر قبطیان هم مونږ آزمائیلي وو او دخپل بزرګ رسول موسی ﷺ مونږ رالیږلي وو، هغوئ ښما پیغام اورسولو چي بني اسرائیلو ماسره کړئی او دوئ ته تکلیف مه ورکوئی. څه دخپل نبوت ګواهي او معجزې هم لرم او دهدایت منونکي به سلامتیا کښې وی، ماته الله ﷻ دوحي امانت راکړې دي او تاسو طرفته ئې لیږلي یم او څه تاسو ته دهغه پیغام درکوم تاسو ته پکار دی چي د خپل رب دخبرونه انکار اونه کړئی. او هسي نه چي سرکشي اختیار کړئی بلکه تاسو ته پکار دی چي دهغه دلایل او احکام ښه په زړه سره قبول کړئی دهغه عبادتونه او واضح آیتونه کیخودل زه ستاسو دبدګوئی او اتهام نه دالله ﷻ سره پناه غواړم. حضرت ابن عباس ؓ او ابوصالح خو داوائی (١) او قتاده رحمة الله وائی چي دي نه مراد په دوئ کاڼړی ورول دی یعني ددوئ ژبي ډیر خرابي وې. او دبدزبانئ تکلیف سره دلاسونو دتکلیف نه هم څه دخپل رب چي ستاسو هم رب دي هغه سره پناه غواړم (٢) که تاسو ښما نه منئ او په ما باور نه کوئی او په الله ﷻ ایمان نه راوړئی نو کم ازکم ماته خو تکلیف مه راکوئی. او په دي انتظار کښې اوسئ چي کله الله ﷻ ستاسو او ښما ترمینځه فیصله اوکړی. بیا چي کله حضرت کلیم الله ﷺ ددوئ مینځ کښې ډیره موده تیره کړه او ورته معلوم شو اوښه تبلیغ ئې اوکړو او هر قسم خیرخواهئ ئې ورسره او کړې نو ددوئ د هدایت دپاره ئې هر قسمه هلې ځلې اوکړې او ورته معلوم شو چي هغوئ په خپل کفر کښې ورځ په ورځ ترقي کوی نو الله ﷻ نه ئې دوئ دپاره بددعا اوکړه ، څنګه چي مخکښې فرمائی چي بل آیت سبارک کښې فرمائی چي حضرت موسی ﷺ اوفرمائیل چي اني زمونږ ربه ! تا فرعون او دده امیرانو ته ددنیا مال ومتاع ورکړې ده ، یاالله ﷻ دوئ په دي وجه نور خلق هم ستا دلارې نه بې لارې کوی ، ته ددوئ مالونه برباد کړې او ددوئ

(١) الطبری :٢٢/٢٦.

(٢) الطبری :٢٢/٢٧.

زړونه سخت کړي چې دوئ دردناک عذابونه اووینی او ترهغې ایمان راونړی ، دالله ﷻ دطرفنه جواب ورکړئی شو چې ائې موسی ؑ او ائې هارون ؑ ! ماستاسو دعا قبوله کړه اوس تاسو ښه په استقامت سره اوسئ. حضرت موسی ؑ ته مونږ اووئیل چې ځما بندګان یعنی بنی اسرائیل دشپې دفرعون او د فرعونیانو لښکر کښې ددې ځائې نه اوباسه داکاروان به تاسو پسې روان وی اوتاسو هم بې ویرې روان اوسئ .او د فرعون لښکر ددوئ نیولو دپاره روان شو ، هرکله چې مخکښې ورته دریاب راغلو نو بنی اسرائیل خو حضرت موسی ؑ په هغې پسې ورکوز کړل . ددریاب اوبه اوچې شوې او دې سره ملګرو په سلامتئ سره پورې وتل نو وې غوښتل چې اوس دریاب له په همسا اووهئ او ورته اووائې چې روان شئ چې فرعون اودهغه لښکر راپورې نه شی . نوهغه وخت هلته حکم راغلو چې دې په دې حال کښې داسې پریږدئ او ددې وجه ئې هم ورته اوخودله چې دوئ ټول به دلته کښې مری . بیا تاسو ټول مطمئن اوبې ویرې شوئ . حکم شوې وو چې دریاب داسې پریږدئی او ځئ ترې نه . د «رهوا» معنی ته اوچه لاره، چې په اصلی حالت کښې وی . مقصد دادې چې پورې شئ نو دریاب ته د روانیدو حکم مه ورکوئی تر دې چې ټول دښمانان ورته داخل شی.اوس دۀ ته د روانیدو حکم سره به ټول اللهﷻ تباه کړی، الله ﷻ فرمائی چې ګورئی څنګه تباه شو ،باغونه،فصلونه ، نهرونه ، محلونه ، ټول ترې پاتې شو. حضرت عبدالله ابن عمر ؓ فرمائی چې دمصر دریائې نیل دمشرق اومغرب ددریابونو سردار دې او ټول نهرونه ددۀ ماتحت دې کله چې ددۀ روانی الله ﷻ ته منظور شی نو ټول نهرونه دۀ ته د اوبو رسولو حکم کوی. ترڅو چې رب ته منظور وی نو ده ته اوبه رازی .بیا الله ﷻ نورنهرونه منع کوی او حکم ورته کوی چې خپل خپل ځائې ته واپس شئ.اود فرعونیانو دا باغونه د دریائې نیل په غاړه مسلسل دی .د رسوان نه واخله تر رشید پورې دا سلسله تلې ده او ددې نهه جزیرې دی ، خلیج اسکندریه ، دمیاط خلیج سر دوس،خلیج مصنف،خلیج نبوم ، خلیج منتهی،اودا ټول ددې په اوبو اوبه کیږی،او ډیر په امن کښې پټی دی چې د مصر د دریاب پورې رسیدلی دی . دا ټول ددې په اوبو اوبه خور کیږی . اوډیر په امن او راحت سره ژوند تیروی . خو غرور ئې اوکړو او آخر ټول نعمتونه ترې لاړل اوتباه شو ، مال او اولاد ، سلطنت اوعزت هرڅه په یوه شپه کښې لاړل.او دبوسو په شان باد کړې شو.اود تیرو خلقو په شان بې نخښې کړې شو او داسې ډوب کړې شو چې بچ نشو ، جهنم ته اورسیولې شو او بدترین ځائې ته داخل شو. ددوئ ددا ټول ځیزونه الله ﷻ بنی اسرائیل ته ورکړل . لکه چې یو بل ایت مبارک کښې دی چې مونږ دې کمزورو ته د صبر بدله کښې د فرعونیانو ټول ځیزونه ورکړل . اوبې ایمانه خلق مونږ برباد کړل . دلته هم دوئم قوم چې کوم وارث جوړ کړې شو ، دوئ نه مراد بنی اسرائیل دی ، بیا ارشاد دې چې په دوئ نه زمکې اوژړل او نه آسمان. ځکه چې ددوئ عملونه نیک نه وو چې آسمان ته ختلې وې. او اوس دهغې دنه ختلو په هغې افسوس کوی .نه په زمکه کښې داسې ځایونه وو چې هلته دوئ ناست وې او دالله ﷻ عبادت ئې کولې . او دوئ چې نن هغه ځائې نه مومی نو په دې ماتم کوی . اودوئ ته مهلت ورنکړې شو. مسند ابویعلی موصلی کښې دی چې دهر بنده دپاره په آسمان کښې دوه دروازې دی، دیو نه ددۀ روزی راکوزیږی او دویمه باندې ددۀ عملونه بره خیژی . هرکله چې دې مړ شی او هغوئ عملونه او رزق نه وینی نو ژاړی .بیا حضرت نبی کریم ﷺ دا آیت مبارک تلاوت کړو[1] ابن ابی حاتم کښې دی چې درسول الله ﷺ فرمان دې چې اسلام دغریبئ نه شروع شوې دې او په غریبئ به ختم شی.یادساتئ چې دمومن انجام دمسافر په شان دې . مومن چې کله سفر کوی اوهلته په هغه څوک ژړلو والا نه وی نو دده دپاره زمکه او آسمان ژاړی.بیا حضرت نبی کریم ﷺ د اآیت مبارک تلاوت کړو

---

[1]) ترمذی کتاب تفسیر القران باب ومن سورة حم الدخان: ۳۲۵۵، مسند ابی یعلی : ٤۱۲۳، .

او وي فرمائيل چې په کافرانو باندې دا دواړه نه ژاړي .[1] حضرت علي ﷺ نه چا تپوس او کړو چې تپوس او کړو چې زمکه او آسمان په چا ژاړي ؟ وي فرمائيل چې نن تا دهغې خبر تپوس او کړو چې ددې نه مخکښې هيچا نه دې کړې . واوره هر بنده دپاره په دې زمکه باندې يو ځائې وی او دې په هغې مونځ کوی او آسمان کښې يو ځائې وی چې په هغې ددهٔ عملونه پورته خيژی . او د فرعونيانو نيک عملونه نه وو . په دې په هغوئ نه زمکه ژاړی اونه آسمان . اونه هغوئ ته مهلت ورکړې شو چې څه نيکی ئې کړې وی[2] بلکه حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چې دوئ نه چاتپوس اوکړو نو هغوئ هم داشان جواب ورکړو حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چې تر څلويښتو ورځو پورې زمکه په مومن ژاړي[3] هرکله چې حضرت مجاهد رحمه الله دابيان اوکړو نو په دې باندې چا دحيرانتيا سوال اوکړو . نو دوئ اوفرمائيل چې سبحان الله په دې کښې د حيرانتيا څه خبره ده ، کله چې مومن په زمکه باندې د خپلې رکوع او سجدې دپاره ځائې مقرر کړې وی او په هغې ئې آبادساتی . اودکوم بنده تکبيرونه اوتسبيح چې آسمان اوری نو ولې دادواړه آسمان او زمکه به ددې عبادت کوونکی دوباره نه ژاړی ؟ حضرت قتاده رحمه الله فرمائي چې دفرعونيانو په شان خوار او ذليل باندې به ولې ژاړی ؟ حضرت ابراهيم فرمائي چې کله نه دا دنيا جوړه شوې ده ، دهغې وخت نه آسمان په دوؤ سړو ژړلی دی، ددوئ شاګردانو دوئ نه سوال اوکړو چې ولې آسمان اوزمکه په هر ايماندار نه ژاړی څه ؟ نو وې فرمائيل چې په دومره برخه چې په خومره ددهٔ عملونه پورته خيژی . واورئی د آسمان ژړل د آسمان سور کيدل او د ګلاب پشان کيدل دی . نوداحال صرف د دوه سړو په مرګ باندې شوې دې . دحضرت يحيي ﷺ دقتل په موقع آسمان سور شو اووينه ترې بهيدله . اودويم دحضرت حسين ﷺ په قتل هم د آسمان رنګ سور شوې وو (ابن ابی حاتم) ديزيد بن ابوزاد قول دې چې دحسين ﷺ دقتل په وجه د آسمان غاړې سرې شوې اودا سرهٔ کيدل ددهٔ ژړا وه حضرت عطاء رحمه الله فرمائي چې ددهٔ د غاړو سرهٔ کيدل ددهٔ ژړا ده . دا هم وئيلې شوی دی چې د حضرت حسين ﷺ د قتل په ورځ به چې کوم کانړئی اوچته کولې شونو دهغې لاندې به سرهٔ وينه راوتله . په هغه ورځ تندر هم نيولې وو او ددې غاړې هم سرې شوې وې او کانړې هم راپريوتلی وو خودا ټولې خبرې بې بنياده او دشيعه ګانو جوړې کړې شوې افسانې دی . په دې کښې هيڅ شک نشته چې دحضور نبی کريم ﷺ د نمسي د قتل واقعه ډيره غمناکه او دردناکه ده او په دې کښې ډير افسوس اوحسرت دې . خو چې په دې شيعه ګانو کومه حاشيه خيژولې ده او کومې خبرې ئې کړی دی نوهغه هسې ګپ شپ دې داخيال اوکړئی چې ددې نه لوئې لوئې واقعات وارد شوی دی او په هغې په آسمان کښې انقلاب نه دې راغلې . ددوئ والد محترم هم قتل شوې وو او په دې دټولو اجماع ده چې هغوئ دحسين ﷺ نه بهتر وو نه خو دکانړو لاندې وينه وه او نه نور څه وو . حضرت عثمان بن عفان ﷺ هم ګير کړې شوې وو او ډير زيات په بې رحمئ سره اوپه ظلم سره شهيد کړې شوې وو دا هغه لوئې مصيبت ووچې ددې نه مخکښې مسلمانانو ته ددې نه زيات لوئې مصيبت نه وو رسيدلې خو په دې ټولو واقعاتو کښې يوه خبره هم اونه شوه کومې چې شيعه ګانو دحضرت حسين ﷺ دمرګ په حقله مشهورې کړې دی . دا پريږدئی د ټولو انسانانو دينی اودنياوی سردار سيد البشر حضرت محمد ﷺ چې په کومه ورځ وفات شوې وو نو په هغه ورځ هم څه نه وو شوی . او دا واورئی چې کله د حضرت نبی کريم ﷺ ځوئې حضرت ابراهيم وفات شو نو په هغه ورځ اتفاقی طور نمر تندر نيولې وو . او چا اووئيل

[1] ) داروايت مرسل دې .
[2] ) الطبری : ۳٤/۲۲.
[3] ) حاکم : ٤٤۹/۲.

چې دابراهیم په مرګ باندې نمر تندر نیولې دې . نو حضرت ددې اوریدو نه پس صلاة کسوف اداکړو او زر زر خطبې ته اودریدو او وې فرمائیل چې نمر اوسپوږمئ دواړه دالله ﷻ نخښې دی ، دچا په مرګ باندې او ژوندباندې ددوئ تندری نه نیسی (١).

**قوله تعالى: وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِي إِسْرَآءِيلَ**

**په بنی اسرائیلو د الله ﷻ احسانات:** ددې نه پس آیت کښې الله ﷻ په بنی اسرائیلو باندې خپل احسان وریادوی چې مونږ دوئ ته دفرعون پشان متکبراوظالم نه نجات ورکړو .هغه بنی اسرائیل خوار اوذلیله کړی وو اوخدمتونه بهٔ ئې ترې اخیستل . د بې قوفئ په وجه ئې دهیڅ حد بندئ خیال نه ساتلو . دالله ﷻ زمکه کښې ئې فساد کولو اودې بدکارونو کښې ددهٔ قوم هم سررو .بیا په بنی اسرائیلو دیوبلې مهربانئ ذکر کوی چې مونږ تاسو ته د هغه زمانې ټخلقو باندې فضیلت درکړو. هرې زمانې ته عالم ونیلې شي.دامراد نه دې چې په ټولو مخکښینو اوو روستنو مونږ بزرګي ورکړې وه . دا آیت مبارک هم دهغه آیت مبارک په شان دې چې هغې کښې فرمان دې چې ﴿قَالَ يَٰمُوسَىٰٓ إِنِّي ٱصْطَفَيْتُكَ عَلَى ٱلنَّاسِ﴾ اے موسی ﷺ ! مونږ تاته په خلقو بزرګی درکړېده . یعنی ددې زمانې په خلقو یا لکه دحضرت مریم علیها السلام دپاره فرمائی چې ﴿وَٱصْطَفَىٰكِ عَلَىٰ نِسَآءِ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ ددې مطلب دادې چې دهغې زمانې په ټولو ښځو مونږ تاته فضیلت درکړې دې ، ځکه چې ام المومنین حضرت خدیجه رضی الله عنها ددوئ نه یقینی طور افضله ده . یا ئې برابر ده .داشان حضرت آسیه بنت مزاحم چې د فرعون ښځه وه اودام المومنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فضیلت په نورو ښځو داسې دې لکه چې د ماتې روټئ په نوره روټئ کوم فضیلت دې .بیا په بنی اسرائیلو دبل احسان ذکر کوی چې مونږدوئ ته هغه حجتونه او معجزې او کرامتونه ورکړی وو چې په هغې کښې د هدایت دلټونکو دپاره صفا صفا امتحان وو.

| | | |
|---|---|---|
| لَيَقُولُونَ | إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ | |
| خامخا وائی | بیشکه دا خلق | |
| | بیشکه دا (کافرا) وائی | ................ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنْ هِيَ | إِلَّا | مَوْتَتُنَا | ٱلْأُولَىٰ | وَمَا نَحْنُ | بِمُنشَرِينَ |
| نهٔ دې عاقبت | مګر | مرګ زمونږ | رومبنې دې | اونهٔ یو مونږ | چې دوباره به راپورته کړې شو |
| | چې بس دغه ددنیا مرګ (زمونږ آخری انجام) دې | | ............ | اومونږ بیان راوژندې کیدونکی نه یو | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأْتُوا | بِـَٔابَآئِنَآ | إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ | أَهُمْ خَيْرٌ | أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ | |
| پس راولئ | پلاران زمونږه | که یئ تاسو رښتینی | آیا دوئ بهتر دی | او که قوم دتبع | |
| نوکه تاسو پیغمبران رښتینی یئ | انوزمونږ پلار نیکه راواپس کړئ | | آیا داخلق بهتر دی یا دتبع قوم | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَٱلَّذِينَ | مِن قَبْلِهِمْ | أَهْلَكْنَٰهُمْ | إِنَّهُمْ كَانُوا |
| او هغه خلق | چې مخکښې دهغوئ نه وو | هلاك کړل مونږه هغوئ | بیشکه چې هغوئ |
| او هغه خلق | چې دوئ نه وړاندې تیر شوې وو | کوم چې مونږ هلاک کړل | بیشکه هغوئ لوئې مجرمان |

١) صحیح بخاری کتاب الکسوف باب الصلاة فی کسوف الشمس:١٠٤٣، صحیح مسلم: ٩١٥.

| |
|---|
| مُّجْرِمِيْنَ﴿۳۷﴾ |
| وو مجرمان ا |
| روا |

**قوله تعالى:: إِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَيَقُوْلُوْنَ﴿۳۴﴾**

**دتبع دبادشاه قصه**:دلته مشركانو دقيامت نه انكار اودهغې دليل بيان فرمائيلو نه پس الله ﷻ ترديد كوي چې داچا داخيال وو چې قيامت راتلونكې نه دې اودمرگ نه پس ژوند نشته دې،حشراوقيامت دا ټول دروغ دي ، دوئ دادليل پيش كوي چې زمونږ پلاران اونيكونه مړۀ شوي دي .هغوئ ولې بيا ژوندي نشو. دمرگ نه پس ژوند به دقيامت په ورځ وي دوباره به دنيا كښې نه وي . په هغه ورځ به داظالمان دجهنم خشاك جوړيږي .دغه وخت به دا امت په تيرو شوؤ امتونو گواهي وركوي اوپه دوئ به حضرت محمد ﷺ گواهي وركوي . بيا الله ﷻ دوئ لره ويروي چې هسې نه په تاسوهغه عذابونه رانشي چې كوم په مخكښې قومونو باندې راغلي وو .اوتاسو هم د هغوئ په شان تباه نه شئ .ددوئ واقعات په سورة سبا كښې تير شوي دي . هغه خلقو هم د عربو قحطان سره تعلق لرلو لكه چې دا د عدنان عرب وو. حمير چې دسبا او هغوئ به خپل بادشاه ته تبع وئيل . لكه چې دفارس هر بادشاه ته كسرى وئيل . اودروم هر بادشاه ته به ئې قيصر وئيلو. اود مصر هر بادشاه ته به ئې فرعون وئيلو او د حبشي هربادشاه ته به ئې نجاشي وئيلو. په دوئ كښې يو تبع ديمن نه راووتلو او زمكه كښې اوگرزيدو اوسمرقند ته اورسيدو. د هر ځائې بادشاهانوته ئې شكستونه وركړل . او ډير لوئې ملك ئې قبضه كړو.او ده سره يو زبردست لښكر وواو ورسره يو لوئې رعايا وو ،دۀ حيره نومې ښار جوړ كړې وو.دې خپله زماني كښې مدينې منورې ته هم راغلې وو او ددې ځائې خلقوسره به ئې د ورځې جنگ كولو او دشپې به ئې ورته ميلمستيا كوله . آخر ددۀ هم غيرت لحاظ پيدا شو اوجنگ ئې بند كړو دۀ سره دوه يهود عالمان وو اوهغوئ دحضرت موسى ﷺ ددين پيروكار وو. هغوئ به هروخت دوئ په نيكئ اوبدئ پوهول . دوئ ورته اووئيل چې ته مدينه نشې تاراج كولې .ځكه چې دآخرى زماني د پيغمبر ﷺ دهجرت ځائې هم دادې ، نو دې ددې ځائې نه واپس شو او دا دواړه عالمان ځان سره واخستل .هركله چې دې مكې مكرمې ته اورسيدو نو ده دبيت الله ﷻ شريف راغورزول غوښتل خو دې دواړو عالمانو منع كړو.او ددې پاك كور حرمت اوعزت ئې ورته بيان كړو .او ورته ئې اووئيل چې ددې جوړونكې خليل الله ﷺ دې اوددې آخرى نبي حضرت نبي كريم ﷺ په لاسونو به ددې عظمت نور هم ښكاره شي نو دې خپلې ارادې نه منع شو.بلكه دبيت الله شريف ئې ډير زيات تعظيم اوعزت اوكړو. طواف ئې ترې اوكړو اوغلاف ئې ورته واچولو او ددې ځائې نه يمن ته واپس شو،دې وخته پورې مسيح ﷺ نه وو مبعوث شوې او دغې زمانې دپاره همدغه ريښتونې دين وو.

**د تبع درالحكومت كوم ځائې وو؟**: دغه شان واقعات په ډيره تفصيل سره دسيرت ابن اسحاق كښې موجود دي اوحافظ ابن عساكر هم پخپل كتاب كښې په ډيرتفصيل سيره ليكلي دي .په هغې كښې دي چې ددۀ دارلحكومت دمشق وو ،ددۀ دلښكرو صفونه به دمشق نه يمن ته رسيدلې وو يوحديث پاك كښې دي چې حضرت نبي كريم ﷺ فرمائي چې ماته علم نشته دې چې حد لگولو سره دگناه كفاره كيږي يانه ؟ اونه ماته دا معلوم دي چې تبع ملعون وو كه نه ؟ اونه ماته دددې علم شته چې ذوالقرنين نبي وو كه باشاه ؟[۱] بل روايت كښې دا هم دي چې حضرت عزير ﷺ پيغمبر وو كه نه ؟[۱]،ابن ابى حاتم

[۱]) حاكم :۲/۴۵۰، بيهقي : ۸/۳۲۹، وسنده صحيح .

)دارقطني کښې ددې راوی صرف د عبدالرزاق دې .بل سند سره روايت شوې دې چې د عزير ﷺ دنبی کيدو زمانه ماته معلوم نه ده اونه ماته دا علم شته چې په تبع لعنت اوکړم اوکه نه؟ ددې ذکر کولو والا حافظ ابن عساکر هغه روايتونه درج کړی دی چې په هغې کښې تبع ته دکنځلو کولو اوپه هغوئ دلعنت کولو ممانعت شوې دې.اومونږ به پيش کړو. انشاء الله .خوداسې معلوميږی چې دوئ اول کافران وو اوبيا مسلمانان شوی وو.يعنی دحضرت موسی ﷺ په دين کښې داخل شوی وو اودهغه په لاس ئې ايمان قبول کړې وو.داد حضرت مسيح ﷺ د مبعوث کيدو نه مخکښې واقعه ده دجرهم په زمانه کښې ئې دبيت الله شريف طواف هم کړې وو او غلاف ئې ورته هم جوړ کړې وو اوددې ئې ډير زيات تعظيم اواحترام اوکړو.او زر اوښان ئې دالله ﷻ په نوم قرباني کړل اودا نوره هم ډيره اوږده قصه ده.اودادحضرت نبی کريم ﷺ نه حضرت ابی بن کعب ﷺ حضرت عبدالله بن سلام ﷺ،حضرت عبدالله بن عباس ﷺ،روايت کړې ده اوداصلی قصې دارومدار په حضرت کعب بن احبار ﷺ او حضرت عبدالله بن سلام باندې دې .وهب بن منبه هم دا واقعه نقل کړې ده. حافظ ابن عساکر دتبع قصې سره بله دويمه قصه هم ذکر کړې ده .اوهغه ددوئ نه ډيره روستو ده .دهغه قوم خودهغه په لاس اسلام قبول کړې وو اوبيا دهغه دمرګ نه پس هغوئ بيا واپس کافران شوی وو.اودوباره ئې داوراو بتانو عبادت شروع کړو.لکه څنګه چې په سورة سبا کښې تير شوی دی دهغې تفسير هم په هغه ځائې کښې تير شوې دې . فالحمدلله.

---

**دتبع نومونه او ددهٔ بادشاهي:** حضرت سعيد بن جبير فرمائی چې دې تبع کعبې مبارکې ته غلاف جوړ کړې وو او ورته ئې اچولې وو .دوئ به خلق منع کول چې دې تبع ته بد وائي .دده نوم اسعد ابوبکر ابوکرب مليکرب يماني دې . ددهٔ سلطنت درې سوه شپږويشت کاله وو. ددې نه زيات وخت دې بادشاهانو کښې چا بادشاهی نه ده کړې .دې دحضرت نبی کريم ﷺ نه اووهٔ سوه کاله اګاهو وفات شوې وو. مورخينو داهم بيان کړی دی چې دې دواړو موسوی عالمانو چې دمدينې وو،دوئ چې تبع باشاه ته يقين ورکړو چې دابښار د آخری نبی ﷺ دهجرت ځائې دې نودهٔ يو قصيده اوونيله او دمدينې خلقو دا دامانت په طور ايخودې وه چې دوئ سره وه او دميراث په شکل به يوبل ته رسيدله.اوددې روايت سند سره برابر راروان دې تر دې چې حضرت نبی کريم ﷺ دهجرت په وخت ددې حافظ ابو ايوب خالد بن زيد ﷺ وو او اتفاق سره بلکه دالله ﷻ په حکم دحضرت نبی کريم ﷺ قيام هم دلته شوې وو. ددې قصيدې ښينې شعرونه دادی:

شهدت على احمد انه ............ رسول من الله بارء النسم

فلومد عمري الى عمرة ............ لكنت وزيراله وابن عم

جاهدت بالسيف اعداءه ............ ولفرجت عن صدره كل غم

(ترجمه: څه زړه ته ګواهی ورکوم چې حضرت احمد مجتبی ﷺ دالله ﷻ ريښتونی رسول دې چې د ټولو ساه لرونکو پيداکوونکې دې که څه تر هغه زمانې پورې ژوندې پاتې شوم نوپه الله ﷻ مې قسم چې دهغه ملګرې به يم او دهغوئ مددګار به يم اوهغوئ سره دهغوئ ددښمنانو خلاف په توره جهاد کوم او غم به هغوئ ته نزدې نه پريږدم.

**صنعاء کښې د دوو ښځو قبر:** ابن ابی دنيا کښې دی چې داسلام په دور کښې په صنعاء کښې اتفاق سره يو قبراوکنستلې شونو هغوئ اوليدل چې دوه ښځې يو ځائې کښې ښخې دی اودهغوئ بدنونه بالکل صحيح او مکمل دی.اوسرته ئې د سپينو زرو يو تخته لګيدلې وه اوپه هغې دسرو زرو په

---

[1] ابوداود كتاب السنة باب فى التخير بين الانبياء عليهم السلام: ٤٦٧٤، وسنده صحيح .

لفظونو کښې لیکل شوی وو او هغه لیکل داسې وو چې دا قبر دحیی او تمیس دې اویو روایت کښې ددوئ نوم حیی او تماضر دې،دا دواړه دتبع خویندې وې ،دې دواړو دمرګ په وخت ددې واقعې متعلق دسبا ځینې شعرونه هم نقل کړی دی . حضرت کعب فرمائی چې دتبع تعریف دقران پاک نه معلومیږی چې الله ﷻ ددوئ د قوم غندنه کړې ده دده نه. حضرت عائشه صدیقه ﵂ نه روایت دې چې فرمائی چې تاسو تبع ته بد مه وائې ځکه چې هغه یو نیک سړې وو([1])ابن ابی حاتم کښې دی چې حضرت نبی کریم ﷺ فرمائی چې تبع ته بدمه وائې هغه مسلمان شوې وو. طبرانی او مسند کښې هم دا روایت شته دې([2])عبد الرزاق کښې د حضرت نبی کریم ﷺ فرمان دې چې ماته معلوم نه دی چې تبع نبی وو که نه ؟یو بل روایت کښې دی چې ددې نه مخکښې تیر شوی دی چې ماته معلوم نه دی چې تبع ملعون وو که نه .والله اعلم.دا روایت دحضرت ابن عباس ﷛ نه هم روایت شوې دې([3])حضرت عطاء بن ابی رباح ﵀ فرمائی چې تبع ته کنځل مه کوئی .حضرت نبی کریم ﷺ دوئ ته دبدو ردو وئیلو نه منع کړې ده . والله اعلم .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا خَلَقْنَا | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | وَمَا | | |
| او نهٔ دی پیدا کړی مونږه | آسمانونه | او زمکه | او هغه چې | | |
| او مونږ آسمانونه او زمکه او څهٔ چې د دې دواړو په مینځ کښې دی | | | | | |
| بَيْنَهُمَا | لٰعِبِيْنَ۝ | مَا خَلَقْنٰهُمَآ | اِلَّا بِالْحَقِّ | | |
| په منځ ددې دواړو کښې دی | لوبې کونکي | نهٔ دی پیدا کړی مونږه دا دواړه | مګر په حقه سره | | |
| بې فائدې نه دی پیدا کړي | او مونږ دا دواړه په ډیر حکمت سره پیدا کړی دی | | | | |
| وَلٰكِنَّ | اَكْثَرَهُمْ | لَا يَعْلَمُوْنَ۝ | اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ | مِيْقَاتُهُمْ | |
| ولیکن | اکثر ددوئ نه | نهٔ پوهیږی | بیشکه ورځ دفیصلې | مقرر وخت ددوئ دی | |
| خو په ددوئ کښې زیات خلق نه پوهیږی | بیشکه چې ددې ټولو مقرره نیټه ده | | | | |
| اَجْمَعِيْنَ۝ | يَوْمَ | لَا يُغْنِيْ | مَوْلًى | عَنْ مَّوْلًى | شَيْـًٔا |
| دټولو | هغه ورځ | چې په کار به نهٔ راځي | یو دوست | دبل دوست | هیڅ قدرله |
| ......په دغه ورځ به هیڅ یو دوست د بل دوست هیڅ څه په کار نشی | | | | | |
| وَّلَا هُمْ | يُنْصَرُوْنَ۝ | اِلَّا مَنْ | رَّحِمَ اللّٰهُ | اِنَّهٗ | |
| اونهٔ به دهغوئ | امداد کیدې شی | سوا ددې نه چې په چا | رحم اوکړی الله | بیشکه هغه | |
| اونه به ورسره مدد اوکړې شی | مګر په چا چې الله ﷻ رحم اوکړی | ........بیشکه هغه | | | |
| هُوَ الْعَزِيْزُ | الرَّحِيْمُ۝ | اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ۝ | طَعَامُ الْاَثِيْمِ۝ | | |
| هم هغه غالب | مهربانه دی | بیشکه ونه د زقوم | خوراک دګنهګار دی | | |
| ډیر زبردست مهربان دی | .......... بیشکه د زقوم ونه به د ګناهګارو خوراک وی | | | | |

[1]) حاکم :۲/۴۵۰ .
[2]) احمد:۵/۳۴۰، طبرانی :۶۰۱۳.
[3]) الطبرانی فی الاوسط: ۲

**قوله تعالى:: وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ**

**د زمکې او اسمان په پیدائش کښې د حکمت بیان:** دې ځائې کښې الله ﷻ دخپل عدل وانصاف بیان کوی اوبې فائدې اوعبث کارونو نه دخپل پاکوالی اظهار کوی لکه یو بل آیت مبارک کښې ارشاد دې چې مونږ خپل مخلوق بې کاره اوباطل نه دې پیدا کړې .داشان ګمان زمونږ په حقله صرف دهغه خلقو دې چې کوم کافران دی . اودهغوئ ځائې جهنم دې او ارشاد دې چې ﴿اَفَحَسِبْتُمْ اَنَّمَا خَلَقْنٰكُمْ عَبَثًا وَّاَنَّكُمْ اِلَيْنَا لَا تُرْجَعُوْنَ﴾ آیا تاسو داګمان کوئی چې مونږ تاسو عبث پیدا کړی یئ او تاسو به مونږ ته نه واپس کیږئ؟ الله ﷻ حق مالک او بزرګئ والا دې . دهغه نه سوا بل معبود نشته دې ، هغه د کریم عرش مالک دې . د فیصلو د ورځو یعنی دقیامت په ورځ چې کله الله ﷻ دخپلو بندګانو فیصله کوی .نوکافرانو ته به سزا ورکوی . او مومنانو ته به جزا ورکوی .په هغې ورځ به ټول مخکښینی اوروستونی الله ﷻ ته جمع شی دابه هغه وخت وی چې دیوبل نه به جدا شی ، هغه وخت کښې به رشته دارئی او خپلولئ دوئ ته هیڅ فائده نه ورکوی کله چې الله ﷻ فرمائی چې ﴿فَاِذَا نُفِخَ فِى الصُّوْرِ فَلَآ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَّلَا يَتَسَآءَلُوْنَ﴾ کله چې شپیلئ پوک وهلې شی نو نه به نسب باقی پاتې شی او نه به تپوس پوښتنه ،یو بل آیت مبارک کښې دی چې هریودوست به په هغه ورځ دبل دوست پریشانئ وینی اوهیڅ به نشی کولې.او نه به څوک دچا مدد کولې شی.نه به ورته دبهر مدد رازی . خودالله ﷻ رحمت چې کوم مخلوق ته شامل دې،هغه ډیر غالب اوفراخه رحمت والا دې .

| | | |
|---|---|---|
| اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ | | طَعَامُ الْاَثِيْمِ |
| ابیشکه ونه د زقوم | | خوراك دګنهګار دې ا |
| بیشکه د زقوم ونه به د ګناهنګارو خوراک وی | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| كَالْمُهْلِ | يَغْلِىْ | فِى الْبُطُوْنِ | كَغَلْيِ الْحَمِيْمِ |
| پشان دخیری دتیلو دویخ ا | ایشیږی به ا | په خیټو کښی ا | پشان دایشیدلو دګرمو اوبو ا |
| لکه د تیلو د ویخ خیری ا په خیټو کښې به ویشیږی ا لکه څنګه چې ګرمې اوبه ویشیږی | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| خُذُوْهُ | فَاعْتِلُوْهُ | اِلٰى سَوَآءِ الْجَحِيْمِ | ثُمَّ صُبُّوْا | فَوْقَ رَاْسِهٖ |
| اونیسئ دې ا | پس راکاږئ دې ا | منځ د دوزخ ته ا | بیا واړوئ ا | دپاسه دسر دده |
| (حکم به اوشی)دې راونیسئ ا او ددوزخ مینځ ته ئې راکاږئ ا بیا د ده په سر باندې تکلیف ورکونکې | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| مِنْ عَذَابِ الْحَمِيْمِ | ذُقْ | اِنَّكَ | اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْكَرِيْمُ | اِنَّ هٰذَا |
| دعذاب دګرمو اوبو نه ا | اوڅکه ا | بیشکه ته ا | غالب او عزتمند ئې ا | بیشکه دا |
| ګرمې اوبه توئې کړئ ا (اوبه وئیلې شی)ددې خوند اوڅکه ا ته خوغالب عزت مند سړې وې | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا | كُنْتُمْ | بِهٖ | تَمْتَرُوْنَ |
| هغه څیز دې اچې وئ تاسو ا په باره ددې کښی ا چی شك به مو کولو ا | | | |
| داهغه عذاب دې چې تاسو بهٔ د دې په راتلو کښې شک کولو ا | | | |

**قوله تعالى:: اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ**

**دمنکرینو دقیامت خطرناکه سزا او د شجر زقوم بیان:** کوم خلق چې دقیامت نه منکر دی هغوئ ته به چې کومه سزا هلته ورکولې شي دهغې بيان کيږي .دمجرمانو خپل قول او فعل په نافرمانئ کښې اخته کړې وو.دوئ ته به نن ورځ د خوراک دپاره زقوم ورکولې شي .ځنې وائی چې دې نه مراد ابوجهل دې . اصل کښې هغه هم ددې آيت مبارک وعيد کښې داخل دې خودا دې نشي وئيلې چې آيت صرف دهغه په حق کښې نازل شوې وو. حضرت ابودرداء ﷺ يو سړی ته داآيت مبارک تلاوت کړو خودهغه دژبې نه الفاظ (اثيم) نه اداکيدل .اوهغه به ددې په ځائې يتيم وئيل. نو دوئ هغه ته (طعام الفاجر) اولوستلو([1]) يعنی هغه ته به ددې نه سوانور خوراک نشي ورکولې . حضرت مجاهد ﷺ فرمائی که دزقوم يو قطره د زمکې اوبو کښې پريوزی نو دزمکې د ټولو خلقو معاش به خراب شي([2])يو مرفوع حديث پاک کښې دا هم راغلی دی چې کوم اول بيان شو([3]) دا به دخيری په شان وی .دخپل حرارت،بې خوندنی او نقصان په وجه به خيټه کښې جوش وهی.الله ﷻ به دجهنم داروغه ته اووائی چې داکافراونيسئ نوهغه وخت به اويا زره فرښتې منډه کړی او دې به راخملوی او خوله کښې به ورته دا واچوی.اودجهنم مينځ ته به نې اوغورزوی.بيا به دده په سر ويشيدلې اوبه واچولې شي.لکه څنګه چې فرمائی (يصيب من فوق)يعنی ددوئ په سرونو به د جهنم ګرمې اوبه واچولې شي . چې هغې سره ددوئ څرمنې او ددوئ خيټهٔ کښې دننه چې څه دی هغه به اوسوزی .مونږ مخکښې دا هم بيان کړی دی چې فرښتې به دوئ داوسپنو په سټکونو وهی او ددوئ مازغه به دانه دانه شي . اوبيا به پرې د پورته نه حميم واچولې شي . داچې کوم کوم ځائې ته رسی نو څرمنې به تړې لړې کوی.تر دې چې ددوئ کولمې به پرې کړی اوپنډوته بهٔ راورسی.الله ﷻ دې مونږ ددې نه محفوظ اوساتی .بيا به ددوئ دشرمولو دپاره اونور پښيمانه کولو دپاره وئيلې شي چې واخلئ مزه اوڅکئ تاسو زمونږ په نظر کښې نه عزت والايئ او نه بزرګان يئ . مغازی اموية کښې دی چې حضرت نبی کريم ﷺ ابوجهل معلون ته اوئيل چې ماته الله ﷻ حکم کړې دې چې تاته اووايم چې ستاسو دپاره ويل دې په تا افسوس دې .بيا دوباره وايم چې ستاسو دپاره خرابی ده اوافسوس دې . دې مردار خپلې جامې په لاس راښکلې او وې وئيل چې څه ته او ستا رب خما څه نشی کولې . دې ټوله علاقه کښې خما نه څوک زيات عزت والا نشته دې نو الله ﷻ دې دبدر په ورځ قتل کړو اودې ذليل شو. نو ده ته به اووئيلې شي چې واخله د خپلې لوئې او عزت مزه اوڅکه([4]) اودې کافرانوته به اووئيلې شي چې داهغه دی چې تاسو په دې کښې شک کولو لکه څنګه چې نورو آيتونو مبارکو کښې دی چې دوئ ته به ديکې ورکولې شي او جهنم ته به نې داخلولې شي .اودوئ ته به اووئيلې شي چې دا هغه دوزخ دې چې تاسو داپه دروغه ګڼرلو. داچې تاسو ئې وينئ داجادو دې څه ؟ داخبره دې ځائې کښې هم فرمائی چې دادې هغه چې تاسو په کښې شک کولو.

| اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ |
| --- |
| \| بيشکه متقيان خلق \| |
| بيشکه پرهيزګار خلق.......... |

[1] ) الطبری : ۲۲/۴۳.
[2] ) الطبری : ۲۲/۴۳.
[3] ) ترمذی کتاب صفة جهنم باب ماجاء فی صفة شراب اهل النار : ۲۵۸۵، وهو صحيح ابن ماجه:۴۳۲۵.
[4] ) المغازی للاموی.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيْ مَقَامٍ | اَمِيْنٍ | فِيْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ | يَّلْبَسُوْنَ | مِنْ سُنْدُسٍ |
| به وی په ځائ | دامن کښې | په باغونو او چینو کښې | اچی اغوندی به | جامې دنرمو نازکو ریښمونه |
| به دامن په ځائې کښې اوسیږی \| په باغونو او په چینو کښې به وی \| دریښمونړئ اوغټې جامې | | | | |
| وَّاِسْتَبْرَقٍ | مُّتَقٰبِلِيْنَ | كَذٰلِكَ | | وَزَوَّجْنٰهُمْ |
| اودغټو ریښمونه \| مخامخ به ناست وی یو بل ته \| دا به دهغوئ شان وی \| او ورواده به کړو مونږ هغوئ ته | | | | |
| به اغوندی \| یو بل ته مخامخ به ناست وی \| داخبره هم دغسې ده \| اومونږ به ورته سرې سپینې | | | | |
| بِحُوْرٍ | عِيْنٍ | يَدْعُوْنَ | فِيْهَا | بِكُلِّ فَاكِهَةٍ |
| سرې سرې ښځې \| غټ سترګې \| او غواړی به هغوئ \| په هغې کښې \| هر قسم میوې | | | | |
| دغټو سترګو والا ښځې واده کړو \| هرقسمه میوې به په اطمینان سره راغواړی | | | | |
| اٰمِنِيْنَ | لَا يَذُوْقُوْنَ | فِيْهَا | الْمَوْتَ | اِلَّا الْمَوْتَةَ الْاُوْلٰى |
| په اطمینان سره \| نۀ به څکی هغوئ \| په هغې کښې \| مرګ \| مګر مرګ \| اولنې \| | | | | |
| ............ \| دوی به ددنیا د اولنی (تیرشوی) مرګ نه بغیر بل مرګ نه څکی | | | | |
| وَوَقٰهُمْ | عَذَابَ الْجَحِيْمِ | فَضْلًا | مِّنْ رَّبِّكَ | ذٰلِكَ هُوَ |
| اوابه ساتي هغوئ لره \| دعذاب ددوزخ نه \| په فضل خپل سره \| دطرفه درب ستا نه \| دا هغه | | | | |
| او الله ﷻ به ئې ددوزخ دعذاب نه بچ کړی \| ............داټول ستا د رب فضل دې \| اوهم دغه | | | | |
| الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ | فَاِنَّمَا | يَسَّرْنٰهُ | بِلِسَانِكَ | |
| کامیابی ده لویه \| پس بیشکه \| اسان کړې دې مونږه دا قران \| په ژبه ستا سره \| | | | | |
| لویه کامیابی ده \| ........نو مونږ دا قران پاک ستا په ژبه اسان کړې دې | | | | |
| لَعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُوْنَ | فَارْتَقِبْ | اِنَّهُمْ مُّرْتَقِبُوْنَ | |
| دپاره ددې چې دا خلق نصیحت حاصل کړی \| پس انتظار کوه ته \| بیشکه دوئ هم انتظار کونکی دی | | | | |
| چې دوئ نصیحت قبول کړی \| ..................نو ته انتظار کوه \| اودوئ هم انتظار کوی | | | | |

**قوله تعالی:: اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ مَقَامٍ اَمِيْنٍ**

**جنتی خوراک او لباس** ::دبدبختو د ذکر کولو نه پس اوس دنیکو خلقو ذکر کیږی.پدې وجه قران پاک ته مثانی ونیلې شی دې دنیا کښې چې څوک دالله ﷻ نه چې قادر دې،مالک دې اوخالق دې ویریږی نو هغوئ به دقیامت په ورځ په جنت کښې ډیر په امن کښې اوسکون سره وی .هلته به دوئ د مرګ نه ، دبې دخلئ نه،ویرې نه ، پریشانئ نه،غم او درد نه،مشقت اوشیطان اودهغه دمکرو فریب نه ، درب تعالی دخفګان نه ،غرض دټولو آفتونو اونقصانونونه به بې ویراو بې فکره وی .جهنمیانو ته به د زقوم ونه او داور په شان ګرمې اوبه ورکولې شی .اوجنتیانو ته به جنتی نهرونو نه اوبه ورکولې شی .دوئ ته به مختلف قسم ریښمې جامې ورکولې شی .اوپه هغې کښې به غټ او نرې ریښم هم وی .دوئ به په تختونو ډډې وهلی ناست وی او دچا به یو بل ته شا نه وی لکه د ټولو به یو بل ته مخ وی یعنی یو بل ته به مخامخ ناست وی .دې سره سره به دوئ ته حورې هم ورکړې شی . اودا به سرې سپینې او غټو سترګو

والا به وی.اودا بۀ دومره پاکې وی چې دې ته به چا لاس نه وی لګولې .هغوئ به د یاقوت او مرجان په شان وی او ولې به نه وی هرکله چې هغوئ خپلو زړونو کښې دالله ﷻ ویره اچولې وه اودالله ﷻ په وینا نې ددنیا د خواهشاتو نه ځان بچ کړې وو. نو الله ﷻ به دوئ سره داشان بهتر سلوک ولې نه کوی.

**قیامت کښې به مرګ ذبح کړې شي:**:یو مرفوع حدیث پاک کښې دی که په دې حورو کښې یو حوره په یو تریخ سمندر کښې اوتوکی نو دهغوئ اوبۀ به خوږې شی[1] دوئ ته به هلته قسم قسم میوې چې دوئ ئې غواړی نو ملاویږی به ورته .اوچې څه غواړی نو هغه به حاضرې وی چې څه خواهش کوی نو هغه به ورته ملاویږی بیا استثنی منقطع ده او ددې تاکید کوی .بخاری اومسلم کښې دی چې مرګ به د ګډ په شکل کښې راوستې شی اودجنت او دوزخ مینځ کښې بۀ ذبح کړې شی.او آواز بـه اوشی چې ائې جنتیانو تاسو بۀ اوس همیشه همیشه دپاره په جنت کښې یئ .اوائې جهنمیانو تاسو به اوس همیشه همیشه دپاره دلته یئ او تاسو ته بۀ مرګ نه رازی[2] دسورة مریم په تفسیر کښې هم دا حدیث پاک تیرشوې دې .صحیح مسلم وغیره کښې دی چې جنتیانو ته به اوونیلې شی چې تاسوبه همیشه همیشه تندرست اوسئ او بیماری به درباندې نه رازی .او تاسو به همیشه همیشه والا نعمتونو کښې یئ او دې کښې به هیڅ کله هم کمې نه رازی .او تاسو به همیشه ځوانان یئ اوپه تاسو به بوډاتوب نه رازی[3] بل حدیث پاک کښې دی چې څوک دالله ﷻ نه ویریږی نو هغه بۀ جنت ته داخلیږی هلته بۀ نعمتونه وی . دې به هیڅرې نه محتاج کیږی.نه به مری او نه به هلته جامې خیرنیږی.اونه بۀ ځوانی فنا کیږی[4].د حضرت نبی کریم ﷺ نه تپوس اوشوچې جنتیان بۀ اودۀ کیږی که نه ؟ نوحضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې خوب خودمرګ رور دې ،جنتیان به اوده کیږی نه بلکه مزو او راحتونوکښې به وی[5].داحدیث پاک نوروسندونو سره روایت شوې دې اوددې نه مخکښې دسندونو اختلاف تیر شوې دې والله اعلم . دې راحت اونعمت سره به دا هم لوئې نعمت وی چې دوئ له به الله ﷻ دجهنم نه نجات ورکړی .نومطلوب به حاصل شی او ویره به ختمه شی .پدې وجه ورسره فرمائی چې داصرف دالله ﷻ احسان اوکرم دې . صحیح حدیث پاک کښې دی چې تاسو صحیح سلامت اوسئ او نزدې نزدې اوسئ او یقین اوکړئ چې دچاعملونه هغه جنت ته نشی رسولې .خلقو اووئیل چې ستاسو عمل به هم تاسو نه رسوی ؟ نوحضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې آؤ ځماعملونه بۀ هم خو دالله ﷻ فضل او د هغه رحمت به راسره وی .[6]

**قوله تعالی:**: فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ۝

**دقران پاک صداقت:**:مونږ په خپل نازل کړې قران پاک کښې واضح اوصفا صفا دلیلونه ستاپه ژبه باندې نازل کړې دی .اوهغه ډیر بلیغ او فصیح او واضح او خواږه او پاخه دی.چې خلق دا اونه منی او دروغ نې اوګنړې نو دوئ خبر کړه ورته اووایه چې ښه ده تاسو هم انتظار کوئی او زه هم منتظر یم[؟] تاسو به اووینئ چې دالله د طرفنه د چا تاکید کیږی ؟ دچا کلمه اوچتیږی ؟ چاته دنیا او آخرت ورکولې شی ؟ مطلب دادې چې ائې نبی ﷺ ته تسلی ساته چې فتح او نصرت به ستا وی . داځما عادت دې چې دخپلو

---

[1] ) ابن ابی حاتم وسنده ضعیف جدا .
[2] )صحیح مسلم کتاب التفسیر سروة کهیعص باب قول الله عزوجل ( وانذرهم یوم الحسرة) : ۴۷۳۰، صحیح مسلم: ۲۷۴۹. ۱۰
[3] ) صحیح مسلم کتاب الجنة باب دوام نعیم اهل الجنة: ۲۸۳۷.
[4] ) ابوبکر ابی داود سجستانی صفة الجنة لابن نعیم : ۱۰۱.
[5] ) المعجم الارسط : ۹۳۳، جدا ، النهایة بتقیقی : ۱۴۹۴، صفة الجنة: ۸۴/۳،
[6] ) ددې پشان روایت مبارک صحیح بخاری کتاب الرقاق باب القصد والمداومة علی العمل : ۶۴۶۷، صحیح مسلم :۲۸۱۸، کښې هم موجود دې .

نبيانو عليهم السلام اودهغوئ منونكي مددكوم .اوهغوئ لره پورته كوم. لكه چې ارشاد دې چې ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾ يعنى الله ﷻ داليكلى دى چې زه او څما رسول به غالب كيږو. بل آيت مبارك كښې دى چې ﴿اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا﴾ مونږ به يقينى طور خپلو نبيانو او ايماندارو سره مدد كوؤ په دنيا كښې هم او په آخرت كښې هم .په هغه ورځ چې په كومه ورځ ګواهان اودريږى .اوظالمانو ته به دهغوئ عذر فائده نه وركوى. پدوئ بهٔ لعنت وى او ددوئ دپاره بد كور دې.

الحمد لله دسورة دخان تفسير ختم شو.

دالله ﷻ شكر دې اودهغه احسان دې چې د هغه دطرفنه مونږ ته داتوفيق نصيب شو اوهغه دبدو نه بچ كونكې دې.

| اياتونه | | | سورةالجاثيةمكيةوهي سبع وثلاثون اٰية واربع ركوعات | | | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | | |
| ۳۷ | | | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | | | ۴ |

حٰمٓ ۞ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۞

ح م | نازليدل ددې كتاب | دطرفه دالله نه دى | چې غالب دې | او حكمت والا دې |

حم | ددې كتاب نازليدل دالله ﷻ دطرفه دى | چې زبردست او صاحب د حكمت دې

اِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۞

بيشكه | په آسمانونو كښې | او په زمكه كښې | خامخا ډيرې نښې دى | دپاره دمومنانو |

په آسمانونو او زمكه كښې دايمان دارو خلقو دپاره (دالله د وحدانيت) ډيرې نښې دى

وَفِيْ خَلْقِكُمْ وَمَا يَبُثُّ مِنْ دَآبَّةٍ اٰيٰتٌ

او په پيدائش ستاسو كښې | او په هغې كښې چې الله خوروى | دخناورونه | ډيرې نښې دى |

اوپخپله ستاسو په پيدائش كښې او څومره ساه لرونكي ځيزونه چې دى په دې تولو كښې د يقين

لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۞ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَآ

دپاره دهغه قوم چې يقين كوى | او په اختلاف دشپې | او دورځ كښې | او په هغې كښې |

لرونكو دپاره ډيرې نښې دى | او دشپې په پرله پسې تګ راتګ كښې اوكوم رزق چې الله تعالى

اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ رِّزْقٍ فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ

چې نازل كړې دې الله | دآسمان نه | درزق (باران) نه | پس ژوندئ ئې كړه | په هغې سره | زمكه |

د آسمان د طرفه نازلوى | نوپه هغې باندې د مرګ راوچوالى) نه پس زمكه ژوندئ

بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ

روستو | دمرګ دهغې نه | او په چليدلو | دهواګانو كښې | ډيرې نښې دى | دپاره دهغه قوم |

(تازه) كوى| اود بادونو په اوړيدو رااوړيدو كښې دهوښيارانو دپاره ډيرې نښې دى

| |
|---|
| يَّعْقِلُوْنَ ⑤ |
| چې دعقل نه کار اخلي \| |

قوله تعالى:: اِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

د الله تعالى د قدرتونو بيان::الله ﷻ خپل مخلوق ته هدايت کوي چې دهغه دقدرت په نخښو کښې غور او فکر کوئي.دالله ﷻ نعمتونه اوپيژنئ اوبيا دهغه شکر اداکړئ.اوگورئي چې دالله ﷻ ذات څومره قدرتونو والا دې او زمکه او آسمان هغه ذات پيداکړې دی .دسمندر بې شانه مخلوق هم هغه پيدا کړې دی،ورځې نه شپه اوشپې نه ورځ راويستل ، دشپې تيارې نه پس رڼړا او ورځې رڼړا نه پس تياره راوستل دهغه قبضه کښې دی . دحاجت په وخت کښې بارانونه هم ورو‌ي. درزق نه مراد باران دې په دې وجه چې دخوراک څيزونه دهغې په وجه پيدا کيږي .اوچه زمکه دباران نه پس شنه شي او قسم قسم څيزونه راوزرغون کړي دشمال،جنوب ، مشرق او مغرب هواگانې هر وخت چليږي .څينو هواگانو سره باران هم رازي اوڅينې وريځې داوبو ډکې وی.څينې د روح خوراک جوړيږي او څينې د نورو کارونو دپاره چليږ. اول فرمائي چې په دې کښې ايماندارو دپاره نخښې دي او بيا فرمائي چې يقين کوونکو دپاره . بيا فرمائي چې دعقل والو دپاره . دا ديو عزت نه دبل عزت والا حال ته ترقي ورکول دی . ددې مثال دسورة بقره آيت ( اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ) کښې دې . امام ابن ابی حاتم دلته يو اوږد اثرراوړي دی هغه غريب دې په هغې کښې انسان دڅلور قسمه ګډوډو څيزونو نه پيدا کول هم دی ، والله اعلم.

| |
|---|
| تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۚ |
| \| دا نښې دالله دی \| چې مونږه بيانوؤ دا \| تاته \| دحق سره \| |
| دا دالله ﷻ ايتونه دی \| چې مونږ ئې تاته په حق سره اوروؤ..... |
| فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۢ بَعْدَ اللّٰهِ وَاٰيٰتِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ⑥ وَيْلٌ |
| پس په کومه خبره باند به \| روستو دالله نه \| او دنښو دهغه نه ايمان راوړی دوئ \| تباهي ده \| |
| نو دا خلق به دالله ﷻ اودهغهٔ د آيتونو نه پس په کومه خبره ايمان راوړي \| د هر دروغژن |
| لِّكُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيْمٍ ۙ⑦ يَّسْمَعُ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُتْلٰى عَلَيْهِ ثُمَّ |
| دپاره دهر دروغژن \| گنهگار سړی \| چې اوري \| آيتونه دالله \| چې لوستلې کيږي \| په هغه باند \| بيا |
| نافرمان دپاره تباهي ده \| ........چې دالله ﷻ آيتونه کوم چې ده ته آورولې شي اوري |
| يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا ۚ فَبَشِّرْهُ |
| ټينګتيا کوي \| په غرور سره \| الکه چې هغه نهٔ دی اوريدلی هغه \| پس زيرې ورکړه هغه ته \| |
| نوپه خپل غرور کښې پروت وی \| الکه چې هډو آوريدلې ئې نه وی \| نو ته داسې کس ته |
| بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ⑧ وَاِذَا عَلِمَ مِنْ اٰيٰتِنَا شَيْـًٔا ۨاتَّخَذَهَا |
| په عذاب \| دردناك سره \| او هر کله چې \| پوهه شي \| دآيتونو زمونږ نه \| په څه څيز \| نو نيسی هغه |
| ددردناک عذاب زيرې ورکړه \| او څه وخت چې زمونږ په آيتونو کښې ديو ايت نه خبر شي \| نو په هغې |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هُزُوًا ط | اُولٰٓئِكَ | لَهُمْ | عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ط | مِنْ وَّرَآئِهِمْ | |
| په ټوقو سره | دا خلق چې دي | دپاره ددوئ | عذاب سپکونکې دې | په مخکښې ددوئ | |
| پورې توقې کوي \| داسې خلقو دپاره سپکونکې عذاب مقرر دې \| ...... د دوئ نه مخکښې | | | | | |
| جَهَنَّمُ ج | وَلَا يُغْنِىْ | عَنْهُمْ | مَّا | كَسَبُوْا | شَيْئًا وَّلَا |
| دوزخ دې | او دفع به نهٔ کړي | ددوئ نه | هغه عمل | چې کړې وي دوئ | هيڅ څيز \| او نه |
| دوزخ تيار دې \| دوی چې په دنيا کښې څه کړي وي هغه به ورته هيڅ فائده ورنکړي \| او نه به ورته هغه | | | | | |
| مَا | اتَّخَذُوْا | مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ | اَوْلِيَآءَ ج | وَلَهُمْ | عَذَابٌ |
| هغه (سرپرستان) | چې نيولي دي دوئ | ماسوا دالله نه | سرپرستان | او دپاره دهغوئ | عذاب |
| معبودان څه فائده ورکړي کوم چې دوی دالله ﷻ نه سوا خان دپاره دوستان نيولي وو او هغوئ دپاره لوئې عذاب | | | | | |
| عَظِيْمٌ ط | هٰذَا | هُدًى ج | وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ |
| لوئ دې | دا قرآن | هدايت دې | او هغه کسان | چې انکار ئې اوکړو | د آيتونو درب خپل نه |
| مقرر دې \| دا (قرآن پاک سراسر) هدايت دې \| او چا چې دخپل رب د آيتونو نه انکار کړې دې | | | | | |
| لَهُمْ | عَذَابٌ | مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ع | | | |
| دپاره دهغوئ | عذاب دې | دعذاب دردناک نه | | | |
| هغوئ دپاره دسختئ نه ډک عذاب تيار دې | | | | | |

**قوله تعالى: تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ج**

**قران پاک دتوهين نه بچ کړئ** .مطلب دا دې چې قران کريم دحق طرفنه په ډيره صفائي او واضح طور نازل شوې دې ،ددهٔ روښانه آيتونه تاته تلاوت کولې شي . چې دوئ ئې آوري او بيا هم برې ايمان نه راوړي اونه په دې عمل کوي نو بيا بهٔ آخر دوئ په څه خبره ايمان راوړي ؟ددوئ دپاره ونيلي کيږي او بـه دوئ افسوس دې چې دژبې نه دروغ ويونکي او دزړه نه کافران دی ددهٔ خبرې آوري او خپل کفر کښې او انکار کولو کښې کلک ولاړ دی لکه چې دوئ هډو آوري نه . دوئ ته چې ددوئ دپاره دالله ﷻ سره سزا ده ، دقرآن پاک آيتونه ددوئ ټوقې شوی دی ؟لکه څنګه چې دوئ نن خما کلام پورې ټوقې مسخرې کوي نو سبا ته بهٔ څه هم دوئ ذليله او رسواکړم اودوئ ته به سزا ورکوم.يو حديث پاک کښې دی چې ددښمنانو ملک ته داسې حالت کښې مه ځئ چې تاسو سره قران پاک وی .هسې نه چې هغوئ ددې بې قدري اوکړي او ددې بې آدبي اوکړي ([1])بيا دهغه ذليله عذاب ذکر کوی چې اوفرمائي چې دا قسم خلق به جهنم ته داخلولې شي ، ددوئ مال او اولاد اوددوئ د دروغو معبودان چې دوئ ورتـه ټول عمر عبادت اوکړو هغه به دوئ هيڅ په کار رانشي دوئ ته به زبردست او لوئې عذابونه ورکولې شي بيا ارشاد دې چې داقران پاک سراسر هدايت دې او ددې د آيتونو مبارکو چې څوک منکر وی هغوئ دپاره سخت او دردناک عذاب دې . والله اعلم .

---

[1] )صحيح بخاری کتاب الجهاد باب کراهية السفر الی .....:۲۹۹۰، صحيح مسلم:۱۸۶۹، ابو داود:۲٦۱۰، ابن ماجه ۲۸۷۹:.

اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ

| الله هغه ذات دي | چي تابع ئې کړو | دپاره ستاسو

| الله ﷻ هغه ذات دي چي ستاسو دپاره ئې سمندر تابع

الْبَحْرَ لِتَجْرِيَ الْفُلْكُ فِيْهِ بِاَمْرِهٖ وَلِتَبْتَغُوْا

درياب | دپاره ددې چي اوګرځي | کشتئ | په هغې کښې | په حکم دهغه سره|اودپاره ددې چي تاسو تلاش کړئ

کړي دی|چي بيړئ په کښې دهغه په حکم سره رواني دي| او ددې دپاره چي تاسو دهغه دفضل

مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ وَسَخَّرَ لَكُمْ مَّا

دفضل دهغه نه|اودپاره ددې چي تاسو شکر ادا کړئ | او تابع ئې کړل | دپاره ستاسو| هغه څيزونه

اولټوئ | اودې دپاره چي تاسو شکر اوباسئ|اوځومره څيزونه چي په اسمانونو اوپه زمکه کښې

فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا مِّنْهُ ؕ اِنَّ

چي په اسمانونو کښې دی | او هغه | چي په زمکه کښې دی | ټول | دطرفه خپل نه | بيشکه

کښې پراته دی | هغه ټول ئې ستاسو دپاره د خپل طرف نه تابع کړی دی | بيشکه په دې کښې د

فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝ قُلْ لِّلَّذِيْنَ

په دې کتاب | ډيرې نښې دي | دپاره دهغه قوم | چي فکر کوی | اووايه | هغه کسانو ته

فکرد خاوندانو دپاره نخښې پرتې دی | ..........................ته مومنانو ته اووايه چي هغه خلق

اٰمَنُوْا يَغْفِرُوْا لِلَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ اَيَّامَ اللّٰهِ

چي ايمان راوړو هغوئ | چي ببښنه کوئ | هغه کسانو ته | چي اميد نه لري هغوئ | دبدو ورځو دالله

.............. .......(دخپل اړخ نه ) معاف کړی | چي د الله ﷻ په عذابونويقين نه ساتی|

لِيَجْزِيَ قَوْمًا بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ۝

دپاره ددې چي بدله ورکړي الله | يو قوم ته | په سبب دهغې عمل | چي وو هغوئ | چي کوو به ئې

د دې دپاره چي الله ﷻ يو قوم ته د هغه اعمالو بدله ورکړی کوم چي هغوی کوی

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ اَسَآءَ فَعَلَيْهَا ؗ

چاچي عمل اوکړو| نيک انو دپاره دخان دهغه دي|اوچاچي عمل اوکړوبد|انو ضررئې په هغه دي

چاچي دنيکئ کار اوکړو نو خپل ځان له ئې اوکړو اوڅوک چي بد کوی نو دخپل ځان سره بد کوی

ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ تُرْجَعُوْنَ ۝

بيا به | رب ستاسو ته | واپس کړي شئ تاسو |

بيا تاسوټولو دپاره خپل رب ته واپس ورتګ دی|

قوله تعالى: اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ

**انسان باندې دالله ﷻ احسانات:** الله ﷻ خپل نعمتونه بیانوي چې دهغه ذات حکم سره تاسو سمندر کښې دخپلې خوښې سفرونه کوئی. په لويو لويو کشتو کښې سامانونه يو ځائې نه بل ځائې ته اوړئي. تجارتونه او ګټې کوئي. داځکه چې تاسو په دې دالله ﷻ شکرادا کړئی او ګټه حاصله کړئی. اودرب احسان اومنئ بيا هغه ستاسو دپاره دآسمان ځيزونه لکه نمر سپوږمۍ ستوري اودزمکې ځيزونه لکه غرونه ، نهرونه اوستاسو دفائدې بې شماره ځيزونه ئې تاسو دپاره قابوکړي دی. داټول دالله ﷻ فضل او احسان دې اوداهر څه دهغه طرفنه دی. لکه چې ارشاد دې چې ﴿ ومابكم من نعمة فمن الله ﴾ يعنې تاسو سره چې کوم نعمتونه دی ټول دالله ﷻ دطرفنه دی. اودا دهغه په نومونو کښې يو نوم دې اودا ټول هر څه دهغه دطرفنه دی. او ددې نه تاسو اخستئ شئ اونه تاسو ددې نه تښتولې شئ. هريو دا يقين لري چې هغه داسې دې [1] يو سړي حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه تپوس اوکړوچې مخلوق د څه ځيزونونه جوړ کړې شوې دې ؟ نو دوئ اوفرمائيل چې دنور نه او تيارې نه او ښاورې نه او ورته ئې اوفرمائيل چې لاړشه اوکه ابن عباس رضی الله عنه دې اوليدو نو دهغه نه هم ددې تپوس اوکړه. دې سړي دهغوئ نه هم تپوس اوکړو نو داجواب ئې ورکړوچې هغه ته ورشه او ورته اووايه چې دا ټول ځيزونه د څه نه پيدا شوي دی ؟ هغه واپس شو او سوال ئې اوکړو نو دوئ ﷺ ورته دا آيت مبارک تلاوت کړو [2]. داڅر غريب سره سره منکر هم دی. د غور وفکر عادت ځان کښې پيدا کړ ئی او دقيامت دمنکرانو سپورې ستغې برداشت کوئی اود اهل کتابوا ومشرکانو تکليفونه زغمئ. داحکم داسلام په شروع کښې وو خو روستو دجهاد اوجلا وطنئ احکامو نه پس بيانوي. بيا فرمائي چې تاسو په دوئ سترګې پټوئ ددوئ دعملونو سزا به دوئ ته مونږ ورکوؤ. په دې وجه ددې نه پس فرمائي چې تاسو ټول به مونږ ته واپس کيږئی. اوهريو ته به دنيکئ اوبدئی بدله ورکړې شي. والله اعلم.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | وَلَقَدْ اٰتَيْنَا | بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ |
| | | | او بيشکه ورکړو مونږ | بنی اسرا ءيلو ته |
| | | | اومونږ بنی اسرائيلوته کتاب | |
| الْكِتٰبَ | وَالْحُكْمَ | وَالنُّبُوَّةَ | وَرَزَقْنٰهُمْ | مِّنَ الطَّيِّبٰتِ |
| کتاب | او حکم | او پيغمبری | او ورکړو مونږ هغوئ ته | دپاکو سامانونه |
| او حکمت او نبوت ورکړې وو | | ..................... او ښه پاکيزه خوراکونه مو ورته ورکړي وو | | |
| وَفَضَّلْنٰهُمْ | | عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۶﴾ | | وَاٰتَيْنٰهُمْ |
| او فضيلت ورکړو مونږ هغوئ ته | | په خلقو دزمانې خپلې باندې | | او ورکړل مونږ هغوئ ته |
| اوپه ټول جهان مو ورته فضيلت ورکړې وو | | ......................اوهغوئ ته مو ددين متعلق | | |
| بَيِّنٰتٍ | مِّنَ الْاَمْرِ | فَمَا اخْتَلَفُوْٓا | اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ | مَا |
| واضحه هدايات | دکار ددين نه | پس اختلاف اونه کړو هغوئ | مګر روستو | دهغې نه |
| ښکاره دليلونه ورکړي وو | | ..................... نودغه خلقو د علم راتلونه پس دخپل | | |

[1] الطبری : ۶۵/۲۲.

[2] حاکم : ۴۵۲/۲.

جَآءَهُمُ الْعِلْمُ لا بَغْيًا بَيْنَهُمْ ط إِنَّ رَبَّكَ
چي راغي هغوئ ته علم | د وجې د زياتي كولو نه | په منځ خپل كښي | بيشكه رب ستا به
ضد په وجه اختلاف شروع كړوا ......... ......... بيشكه ستارب به

يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا
فيصله كوى | په منځ دهغوئ كښي | په ورځ دقيامت | په هغه معاملو كښي | چي وو هغوئ
دهغوئ په مينځ كښي د قيامت په ورځ په هغه خبرو كښي فيصله اوكړي | په كومو كښې چي دوى

فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۝١٧ ثُمَّ جَعَلْنٰكَ عَلٰى شَرِيْعَةٍ مِّنَ الْاَمْرِ
په هغې كښي | چي اختلاف به ئې كولو | بيا اوگرځولي مونږ ته | په غټه لاره | دكار ددين نه
اختلاف كوى| ......... بيا (اې پيغمبره) مونږ ته ددين په يوه خاصه طريقه روان كړې

فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝١٨
پس ځه ته هم په دغه لار | او مه ځه ته | په خواهشاتو | دهغه كسانو پسې | چي علم نه لرى |
نوته د دغه طريقې تابعدارى كوه | او دهغه خلقو د خواهشاتو تابعدارى مكوه چه نه پوهيږى|

اِنَّهُمْ لَنْ يُّغْنُوْا عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا ط وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ
بيشكه دوئ | هر گزبه پكار نۀ شي ستا | په مقابله دالله كښې | هيڅ قدرله | ابيشكه چي ظالمان خلق
دوئ دالله ﷻ په مقابله كښي ستا هيڅ په كار نشى راتلي |......... او ظالمان خلق

بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ج وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِيْنَ ۝١٩ هٰذَا بَصَآئِرُ
خيني دهغوئ | دوستان | دخينو نورو دى | او الله | دوست دمتقيانو دي | دادعقلمندئ رڼرا گانې دى
پخپل مينځ كښي ديو بل دوستان دى | اوالله ﷻ د پرهيزگارانودوست دې | دا قران پاک د عامو

لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۝٢٠
دپاره دخلقو | او هدايت دي | او رحمت دي | دپاره دهغه قوم | چي يقين كوى
خلقو دپاره دهوښيارتيا اودهدايت ذريعه ده | اود يقين كونكو دپاره لوئې نعمت دي

**قوله تعالى:: وَلَقَدْ اٰتَيْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ الْكِتٰبَ**

**بنى اسر ائيلوباندې انعامات** بنى اسر ائيلو باندې چې الله ﷻ كوم انعامات كړى وو ،هغه ورته يادوى . فرمائى چې په هغوئ مو كتابونه نازل كړل اورسولان مووورته اوليږل اومونږ ورته حكومت وركړو. غوره خوراكونه اوصفا صفا ځيزونه مو وركول او دهغې زمانې په خلقو مو فضيلت وركړو. اودوئ ته مو ددين غوره او بهتر دليلونه وركړل . او په دوئ دالله ﷻ حجت قائم شو. بيا دې خلقو كښې اختلاف پيدا شو اومختلفې ډلې شوې اوددې وجې نفسى خواهشات اوخودې وه اې نبى ﷺ ستا رب ﷻ به ددې اختلافاتو فيصله دقيامت په ورځ اوكړى دې كښې دې امت ته خبردارې دې چې خبردار تاسو دهغوئ په شان شئ اودهغوئ په پل روان شئ په دې وجه الله ﷻ فرمائى چې ته دخپل رب دوحى تابعدار اوسه اومشركانو سره هيڅ غرض مه ساته ددوئ دوستى خو ددوئ په خپلو كښې دى . دوئ

خپلو کښې ملاويدونکو ته نقصان ورکوي د پرهيزګارانو ولي اوناصر او کارساز الله ﷻ دې . چې دوئ دتيارو نه راوباسي اورڼا طرفته ته ئې راولي. اودکافرو دوستان شيطان دی چې هغوئ د رڼا نه تياروطرفته بوځي . داقرآن پاک دهغوئ خلقو دپاره دې چې يقين ساتي او دليلونو سره سره هدايت اورحمت دې .

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ أَنْ نَجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ

آيا ګمان کوی هغه خلق | چې کوی | بدکارونه | چې اوبۀ ګرزوؤ مونږ دوئ | پشان دهغه کسانو

آيا څوک چې بدکارونه کوی | د هغوئ دا خيال دې | چې مونږ به ه هغوی د هغعه خلقو سره برابر کړو

اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ سَوَآءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ ۚ

چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نيک | چې برابر به وی | ژوند دهغوئ | او مرګ دهغوئ

کوم چې ايماندار دی | او دنيکئ کارونه کوی | چې ددې ټولوژوند اومرګ به يو برابر شی

سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ۝٢١ وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ

ډير بد دې هغه | چې دوئ ئې حکم کوی | او پيدا کړل الله | اسمانونه | او زمکه |

دوئ ډيره خرابه فيصله کوی | ............ او الله ﷻ اسمانونه او زمکه په يو مقصد سره پيدا

بِالْحَقِّ وَلِتُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ

دحق سره | او دپاره ددې چې بدله ورکړې شي | هر نفس ته | هغه | چې ګټلې دی هغه

کړی دی | ............او دا چې هر چاته د هغه عمل بدله ورکړې شی کوم چې هغه کړې وی |

وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝٢٢ أَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلٰهَهُ

او په دوئ به | هيڅ ظلم نۀ کيږی | آيا پس وينې تۀ | هغه څوک چې وې نيوؤ | معبود خپل

او په هغوئ به هيڅ ظلم نه کيږی | آيا تا هغه کس نه دې ليدلې چې دخپل نفس خواهش ئې

هَوٰهُ وَأَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ وَّخَتَمَ

خواهشاتو خپلو لره | او بې لارې کړو هغه لره | الله | سره د علمه | او مهر ئې اووهو |

خپل معبود جوړ کړې دې | او الله ﷻ دغه کس د پوهې باوجود ګمراه کړې دې | او دهغه

عَلٰى سَمْعِهِ وَقَلْبِهِ وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهِ غِشٰوَةً ۚ

په غوږونو دهغه باندې | او په زړۀ دهغه باندې | اووانې چوله | په سترګو دهغه باندې | پرده

په غوږونو او په زړه ئې مهرلګولې دې | اودهغه په سترګو ئې پرده اچولې ده

فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْ بَعْدِ اللّٰهِ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ۝٢٣

پس څوک دې | چې لاراوښائی هغه ته | اروستو دالله نه | آيا پس تاسو نصيحت نۀ اخلئ؟ |

نو دالله ﷻ (دپريښودو) نه پس ورته بل څوک لاراوښائی ؟ | نوتاسوغور نه کوئ ؟ |

قوله تعالى: أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّاٰتِ

**مؤمن او کافر برابر نشي کیدې**: الله ﷻ فرمائي چې مومن او کافر برابر نشي کیدلې . لکه څنګه چې بل ایت مبارک کښې دي چې دوزخي او جنتي نشي برابر کیدې . جنتیان کامران او کامیاب دي . دلته داهم بیان نشي کیدې چې د کفر او ایمان والا او بدو اونیکو والا مرګ او ژوند یو شان نشي کیدې . او نه ئې آخرت او دنیا یو شان کیدې شي . داخو زمونږ په ذات او صفت ډیره لویه بدګماني ده.

**اصل دین څلو څیزونه دي**: مسند ابو یعلی کښې حضرت ابوذر ﷺ فرمائي چې الله ﷻ په څلورو څیزونو د خپل دین بنیاد ایخودې دې . څوک چې ددې نه مخ واړوی او په دې عمل نه کوی نو هغه به الله ﷻ سره دفاسق په حیثیت سره ملاقات کوونکی وی . دوئ نه تپوس اوشو چې هغه څلور څیزونه کوم کوم دی ؟ نو دوئ اوفرمائیل چې هغه دادی ①کامله عقیده لرل ② حلال ③حکم او ممانعت ④ حرام . دهغه ذات د حکمونو تعمیل کول .هغه ذات چې کوم څیزونه منع کړی دی دهغې نه منع کیدل .او د حلالو او حرامو اونهی مالک صرف هغه ذات ګنړل . بس دا اصل دین دې .دحضرت نبی کریم ﷺ فرمان دې چې څنګه د کیکر دونې نه انګور نه پیدا کیږی داشان بدکاره خلق دنیکانو درجه نشي موندې .(١) داحدیث پاک غریب دې . سیرت ابن اسحاق کښې دی چې دکعبې په بنیاد کښې یو کانړئې راووتلو چې په هغې ئې لیکلی وو چې تاسو بدئی کوئی او دنیکو امید ساتئ دا بالکل داسې دی لکه چې ازغی داړې ونې نه څوک دانګور طمع لری . طبراني کښې دی چې حضرت تمیم داری دشپې په تهجدو کښې بیا بیا دالوستلو تردې چې سحر شو ،بیا فرمائي چې الله ﷻ زمکه او آسمان په عدل سره پیدا کړی دی . هغه به هربنده ته بدله ورکوی . اوپه چا به دهغه لوئې ذات طرفنه ظلم نه وی . بیا الله ﷻ فرمائي چې تاسو به هغوئ هم لیدلی وی چې خپل خواهشاتو نه ئې معبودان جوړ کړی دی . چې کوم کارته ئې طبیعت اوشی نو هغه اوکړی او چې دکوم نه ئې طبیعت منع کړی نو هغه نه کوی .دا آیت مبارک دمعتزله د اصولو رد کوی چې نیکی او بدی عقلی ده. حضرت امام مالک ددې تفسیر کولو سره فرمائي چې دوئ په زړونو کښې چې دچا دعبادت خیال رازی دهغه عبادت شروع کوی . ددې نه پس جملې دوه معنی لری . یو دا چې الله ﷻ دوئ دخپل علم په وجه دګمراهئ لائق ګنړل .دویمه معنی دا چې هغه لره حکم دلیل او حجت راورسیدو بیا ئې دوئ ګمراه کړل . دادویمه خبره داولې دپاره مستلزم ده او اوله دویمې دپاره لازم ده . ددوئ په غوږونو مهر دې ، دفائدې او ګټې خبر نه آوری . ددوئ په زړونو مهر دې چې دهدایت خبر نه قبلوی . ددوئ په زړونو پردې دی چې حجت نه وینی.نو د الله ﷻ نه پس دوئ ته څوک لاره خودلې نشي ، ولې تاسو عبرت نه حاصلوئی ، لکه یو ځائې کښې فرمائي چې ﴿مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ وَ يَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ﴾ څوک چې الله ﷻ ګمراه کړی دهغه هادی نشته دې او هغه دوئ پریږدی چې پخپله سرکشئ ، اخته وی .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَقَالُوْا مَا هِيَ | اِلَّا | حَيَاتُنَا الدُّنْيَا | نَمُوْتُ | وَنَحْيَا |
| اوواني دا خلق نه دی دا ژوند | مګر | ژوند زمونږ دې ددنیا | مونږه مرو (هم دلته) | او مونږه ژوندي کیږو (هم دلته) |

او دوی وائي چې زمونږ (ژوند) خو بس هم دا دنیاوی ژوند دې چې مونږ مرو او پیدا کیږو او دا سلسله روانه ده.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَا يُهْلِكُنَآ | اِلَّا الدَّهْرُ | وَمَا لَهُمْ | بِذٰلِكَ | مِنْ عِلْمٍ |
| او نه هلاکوی مونږ | مګر زمانه | او نشته دوئ لره | په دې خبره باندې | هیڅ علم |

او بس دغه زمانه ده چې مونږ وژنی ...... او دوئ سره په دې خبره هیڅ دلیل نشته

(١) ابو یعلی.

اِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ۝ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

نه دي دوئ | مګر | ګمان کوي | او هر کله چې | لوستلې کيږي | په دوئ باندې | ايتونه زمونږ |

دوئ خو صرف ګمان کوئ| او کله چې ورته زمونږ ښکاره ايتونه اولوستې شي

بَيِّنٰتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتُوْا بِاٰبَآئِنَآ اِنْ كُنْتُمْ

واضحه| نو نه وي | دليل ددوئ | مګر | دا چې وائي | راولئ | پلاران زمونږه | كه يئ تاسو

نو دوئ سره ددې نه سوا بل هيڅ جواب نه وي| چې دا اووائي كه تاسو رښتيني يئ انو زمونږ (مړه) پلاران

صٰدِقِيْنَ۝ قُلِ اللّٰهُ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ

رښتيني | اووايه چې الله | ژوند دركوي تاسو ته | بيا به مړه كوي تاسو | بيا به راجمع كوي تاسو

نيكونه راولئ| ورته اووايه چې هغه الله دې چې تاسوژوندي كوي| بيا تاسو مړه كوي| بيا به تاسو ژوندي كړي

اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

ورځې دقيامت ته | چې نشته شك په هغې كښې | وليكن | زيات خلق |

بيابه هم هغه تاسو دقيامت په ورځ راجمع كړي | چې په هغې كښې هيڅ شک نشته || خو زيات خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ۝

نه پوهيږي |

(په دې هم) نه پوهيږي |

**قوله تعالي:: وَمَا يُهْلِكُنَآ اِلَّا الدَّهْرُ**

**د فلاسفرانو د نظريې رد::** ددهري كافرانو اوهغوئ پشان عقيدې والوحال بيانيږي چې دوئ دقيامت دورځې نه منكر دي .اودا وائي چې دا ددنيا انتهاء اوابتداء ده. څوك ژوندي كوي او څوك مړهٔ كوي. اوقيامت بالكل هيڅ څيز نه دې فلاسفرانو كښې چې علم كلام ئې منلو هغوئ بهٔ هم داسې وئيل او داخلق دابتداء اوانتها قائل نه وو.او په فلاسفرانو كښې چې كوم دهريه او دوه مخيز خلق وو هغوئ دخالق نه هم منكر وو. ددوئ خيال وو چې هر شپږ ديرش كاله پس د زمانې يودور ختميږي او هر څيز خپل اصلي حالت ته رازي اودداسې څو دورونو هغوئ قائل وو. اصل كښې دوئ دمعقول سره هم بې كاره جګړې كولې او دمنقول نه ئې هم مخ واړولو. او وئيل ئې چې دزمانې ګردش هلاكونكئ دې اوالله ﷻ نه دې . الله ﷻ فرمائي چې ددې خبرې دوئ سره هيڅ دليل نشته دې،او سوا د خيال او وهم نه دوئ سره هيڅ نشته دې .

**زمانې ته كنځل مه كوئ ::** دابوداود وغيره يو صحيح حديث پاك كښې دي چې حضرت نبي كريم ﷺ فرمائي چې الله ﷻ فرمائي چې بنده ماته تكليف راكوي او هغه زمانې ته كنځل كوي او اصل زمانه څهٔ يم ، ټول كارونه او د ورځې شپې راوستل څما كار دې[۱] يوروايت كښې دي چې د جاهليت زمانې دخلقو خيال وو چې مونږ ورځ او شپه هلاكوي [۲] او هغه موژوندي كوي نو الله ﷻ په خپل كتاب كښې دانقل كړل ، وې فرمائيل چې هغوئ به زمانې ته بد وئيل نو الله ﷻ اوفرمائيل چې ماته بنيادم تكليف راكوي او هغه زمانې ته كنځل كوي اوزمانه څه يم. ټول كارونه ماسره دي او ورځ اوشپه څه راولم . ابن

۱ ) صحيح بخاري كتاب التفسير سورة الجاثية :۴۸۲٦، صحيح مسلم:۲۲۴٦.

۲ ) صحيح بخاري كتاب الادب لاتسبو الدهر : ٦۱۱۸، صحيح مسلم: ۲۲۴٦، ابن حبان: ۵۷۱۴.

ابي حاتم کښې دي چي بنيادم زمانې ته کنځل کوي څه زمانه يم شپه اوورځ څما لاس کښې دي يو بل حديث پاک کښې دي چي ما دخپل بنده نه قرض طلب کړو خوهغه راته رانکړو ، هغه زمانې تـه کنځل کوي او وائي چي هائې هائې زمانه اوزمانه څه يم ،(١) امام شافعي رحمه الله او ابوعبيده وغيره امامان دلغت او تفسير ددې حديث پاک په شرح کښې وائي چي د جاهليت عربو کښې چي به څه آفت او مصيبت اوتکليف راغلو نو هغوئ به دهغې نسبت زمانې ته کولو او زمانې تـه کنځل کول اصل کښې الله ﷻ ته کنځل کول دي . چې دچا پـه لاس او وس کښې زمانه ده اود راحت او مصيبت مالک دې اوهغـه دالله ﷻ کريم ذات دې ، نوهغـه کنځل حقيقي فاعـل يعنـي الله ﷻ تـه کولې شي . پدې وجه حضرت نبي کريم ﷺ دې حديث پاک کښې دافرمائي او خلق ددې نه منع کوي داتصريح ډيره صحيح او درست ده ، امام ابن حزم وغيره چي ددې حديث پاک نه کوم مطلب اخذ کړې دې چي د هر دالله ﷻ نومونو کښې يو نوم دې ، دابالکل غلط دې ، والله اعلم.

**قوله تعالى:: وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا**

بيا ددې بې عملو دفضول بحث بيان کيږي چي د قيامت قائميدو او دوباره ژوندی کيدل بالکل صفا دليلونه چي کله دوئ ته ورکولې شي اوقائل کولې شي نو دوئ سره بالکل څۀ جواب نه وي نودوئ وائي چي ښه ده بيا مونږ پلاران او نيکونه ژوندي کړئ او زمونږ ته اوښائې چي مونږ هغه اومنو. نو الله ﷻ فرمائي چي ستاسو پيدا کول او ستاسو مړۀ کيدل تاسو په خپلو سترګو وينئ چي تاسو هيڅ نه وې هغه ذات تاسو پيدا کړئ اوهغه طرفته به تاسو ورځئ . نو چي څوک په اول خل پيدا کولو باندې قادر دې نو هغه په دوباره پيدا کولو به ولې قادر نه وي ؟ لکه عقلي لحاظ سره د هدايت سره دا خبره په واضح طور ثابته ده چي څوک په اول سر کښې يو څيز جوړوي نو دهغې دوباره جوړول د اولني خل نه آسان دی . نودلته تاسولره دنيا ته دوباره نه راولي لکه څنګه چي تاسو وائی چي زمونږ پلاران او نيکونه ژوندي کړئ. داخو دعمل کور دې . دجزا ورځ قيامت ده. دلته خو هر يو ته مهلت ورکولې شي که په هغې کښې هغه غواړي نو ددويم کور دپاره تيارې کولې شي . نودخپلې بې عملئ په وجه تاسو ته انکار کول نه دي پکار . تاسو دالرې ګنړی خو پـه اصـل کښې هغه ډير نزدې دې تاسو دهغې راتلل ګران ګنړئ خو په حقيقت کښې هغه راتلونکئ دې ،مومنان دعلم اوعقل خاوندان دی هغوئ پـه دې کامل يقين ساتي اوپه عمل کښې اخته دي .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلِلّٰهِ | مُلْكُ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ ط | وَيَوْمَ | |
| او خاص الله لره ده | بادشاهي داسمانونو | او دزمکي | او په کومه ورځ | | |
| او د اسمانونو اودزمکي سلطنت صرف دالله ﷻ دپاره دي | | | | | |
| تَقُوْمُ | السَّاعَةُ | يَوْمَئِذٍ | يَّخْسَرُ | الْمُبْطِلُوْنَ ﴿٢٧﴾ | وَتَرٰى |
| چي قائم شي | قيامت | په هغه ورځ به | په خساره کښي پريوزي | باطل پرست خلق | اوبه ويني ته |
| او په کومه ورځ چي قيامت را شي | نو په دغه ورځ به باطل پرست لوئي تاوان اوکړي | او ته به | | | |
| كُلَّ اُمَّةٍ | جَاثِيَةً قف | كُلُّ اُمَّةٍ | تُدْعٰى | اِلٰى كِتٰبِهَا ط | اَلْيَوْمَ |
| هره ډله | پرمخي پراته | هره ډله به | رابللي کيږي | عملنامي خپلي ته | نن ورځ |
| هره يوه ډله اووينې | چي په ګونډو به پريوتي وي | هره ډله به خپلي عمل نامي ته رابللي شي | | | |

(١) الطبري : ٢٢؍٧٩ ،

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تُجْزَوْنَ | مَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ۞ | هٰذَا كِتٰبُنَا | |
| به بدله درکړې کيږي تاسو ته | دهغه عملونو | چې وئ تاسو | چې کول به مو | دا زمونږه کتاب دې | |
| (اودا به ورته وئيلی شي، نن به تاسو ته دخپلو کارونو بدله درکولې شي | دا زمونږ جوړ کړې دفتر دې | | | | |
| يَنْطِقُ | عَلَيْكُمْ | بِالْحَقِّ ط | اِنَّا كُنَّا | نَسْتَنْسِخُ | |
| چې (خبرې) گواهي کوی | په تاسو باندې | په حقه سره | بيشکه وو مونږه | چې مونږ به ليکل په چا | |
| چې ستاسو خلاف ربښتيا ربښتيا وينا کوی| ..........مونږ خو به ستاسو ټول کارونه (په | | | | | |
| مَا | كُنْتُمْ | تَعْمَلُوْنَ۞ | | | |
| هغه څه | چې وئ تاسو | چې کول به مو | | | |
| فرښتو باندې ليکل | | | | | |

**قوله تعالی:: يَوْمَئِذٍ يَّخْسَرُ الْمُبْطِلُوْنَ۞**

**قيامت کښې به باطل په نقصان کښې وی::** داوس نه واخله ترهميشه پورې او دنن نه مخکښې هم د ټولو آسمانونو او ټولو زمکو مالک او بادشاه الله ﷻ دې .څوک چې د الله ﷻ او دهغه درسولانو او کتابونو نه منکروی نو دقيامت په ورځ به هغه لره ډيره لويه سزا وی .حضرت سفيان ثوری m چې کله مدينې منورې ته تشريف راوړو نو دوئ واوريدل چې معافری يو ټوقې کونکئ سړې دې اوهغه خلق په خپلو خبرو باندې خندوی . نو دوئ ورته نصيحت اوکړو چې ورته ئې اوفرمائيل چې ولې تاته معلوم نه دی څه چې يوه ورځ به رازی چې هغې کښې به باطل والا ټول نقصان کښې وی ؟ نو ددې خبرې په هغه ډير اثراوشو او معافری تر مرګه پورې دا نصيحت هير نه کړو؟ ابن ابی حاتم.

**قوله تعالی:: وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً**

په هغه ورځ به هر کس په زنګون پروت وی:هغه ورځ به داشان درناکه اوعذابناکه اوسخته وی چې هر سړې به په ګونډو پروت وی .دا به هغه وخت وی چې کله جهنم ددوئ مخامخ کړې شی اوجهنم به يو ساه واخلی اودهغې نه به هر بنده ويريږی او په ګونډو به پريوزی تر دې حضرت خليل الله ؑ او حضرت عيسی روح الله ؑ هم ددوئ دخلو مبارکو نه به صرف په هغه وخت کښې نفسی نفسی اوځی صفا صفا به وائی چې يا الله ﷻ مونږ ستا نه نور هيڅ نه غواړو صرف خپله سلامتيا غواړو. حضرت عيسی ؑ به اوفرمائی چې نن څه دخپلې مور دپاره هم ستانه څه نه غواړم بس ما بچ کړه . څينې مفسرينو ليکلي دی ، مراد دهغې نه دادې چې هره ډله به جدا جدا وی . خو ددې نه بهتر او غوره تفسير دې چې مونږ اوکړو يعنی هر يو به په ګونډو پروت وی . ابن ابی حاتم کښې دی چې حضرت نبی کريم ﷺ فرمائی لکه چې څه تاسو په جهنم کښې به ګونډو پراته وينم. [١]

بل مرفوع حديث پاک کښې دی چې په هغې کښې دشپيلئ بيان دې په هغې کښې داهم دی چې خلق به جدا جدا کړې شی او ټول امتونه به په ګونډو پراته وی دا دالله ﷻ فرمان دې چې (وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً) په دې کښې دواړو حالتونه جمع کړې شوی دی.نو اصل کښې دواړه تفسيرونه ديو بل خلاف نه دی والله اعلم.

**قوله تعالی:: كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰٓى اِلٰى كِتٰبِهَا ط**

**قيامت کښې به هره ډله هر کس خپلې عمل نامې ته رابللې شي::** بيا فرمائی چې هره ډله به خپلو عمل نامو ته

---

[١] داروايت مرسل

راوبللي شي چې ارشاد دې چې ﴿وَوُضِعَ الْكِتٰبُ وَجِاْىٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ﴾ عمل نامه به کيخودلې شي او نبيان اوګواهان به راوستلې شي، نن به تاسو ته ستاسو دعمل نامو بدله درکولې شي لکه چې فرمان دې چې ﴿يُنَبَّؤُا الْاِنْسَانُ يَوْمَئِذٍۭ بِمَا قَدَّمَ وَاَخَّرَ﴾ انسان به دهريو ځائې نه خبر کړې شي چې کوم ددهٔ مخکښې ليږلي وو اوکوم ئې رو ستو پريخودى وو. ددوئ مخکښينى او روستنى ټول عملونه به وى بلکه خپله به انسان دخپل حال نه خبر شي. ټولې حيلې اوبهانې اوکړى ،داعمل نامه چې زمونږ په حکم زمونږ امانتدار او رېښتونې فرښتو ليکلې ده هغوئ به ستاسو عملونه ستاسو مخې ته کيږدى نو ته به اووينې چې ګناهګار به دد ې نه ويريږى .او وائى به چې افسوس مونږ لره ډيره بدبختى ده او دعمل نامې مو دا حال دې چې په دې کښې خو هيڅ لوئې واړه عملونه نه دى پريخودى . هر څه په کښې ليکلي شوى دى چې څه دوئ کړى دى هغه به ورته ټول حاضر کړې شي ، ستا رب په هيڅوا ظلم نه کوى . بيا فرمائى چې مونږ محافظو فرښتو ته حکم ورکړې دې چې دا آسمان ته وړى او آسمانى عملنامو د ديوان دليکلو سره مقابله کولې شي کوم چې هره شپه دهغې دمقدار مطابق دوئ ته ظاهريږى کوم چې الله ﷻ دخپل مخلوق دپيدائش نه اول ليکلى دى . نو ديو حرف کمې زياتې به په کښې نه وى . بيا دوئ ددې جملې تلاوت اوکړو.

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

پس هر چې هغه کسان دى | چې ايمان ئې راوړو

نو کومو کسانو چې ايمان راوړې وو

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِىْ رَحْمَتِهٖ ؕ

او عملونه ئې کړى ووه نيک | پس داخل به کړى هغوئ لره | رب دهغوئ | په رحمت خپل کښې

اونيک عملونه ئې کول | نو دهغوئ رب به هغوئ په خپل رحمت کښې داخل کړى

ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ۞ وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ

دا | هغه | کاميابى | ښکاره ده | او هر چې هغه کسان دى | چې کفر ئې کړې وو

اوښکاره کاميابى هم دغه ده | ................اوڅوک چې کافران وو|نو (هغوئ ته به اووئيلې شي چې)

اَفَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِىْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ

(ورته به اووئيلې شي)ايا نه ووه |ايتونه زما |چې لوستلې کيدل به |په تاسو باند |پس تکبراوکړو تاسو

ولې تاسو ته به زما ايتونه نهٔ لوستلې کيدل ؟ (ولې نه) | خو تاسو (دهغې د منلونه) تکبر اوکړو

وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ۞ وَاِذَا قِيْلَ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ

اووئ تاسو | قوم | مجرمان | او هر کله چې | به اووئيلې شو | چې بيشکه | وعده دالله

اوتاسو نافرمانه خلق وئ| اوکله چې به دا اووئيلې شو چې دالله ﷻ وعده حقه ده | اودقيامت

حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيْهَا قُلْتُمْ

حقه ده | او قيامت چې دې | نشته هيڅ شك | په راتلو دهغې کښې | نو اوبه وئيل تاسو

(په راتلو) کښې هيڅ شک نشته | ............................نوتاسو بهٔ وئيل چې مونږ نه پوهيږو چې

مَا نَدْرِيْ مَا السَّاعَةُ إِنْ نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَّمَا نَحْنُ

چي نهٔ پيژنو مونږ | چي څه دي قيامت | نهٔ کوو مونږ گمان | مگر گمان لږ | اونهٔ يو مونږه

قيامت لاڅه څيز دي | ..........مونږ خو دا صرف يو خيالي څيز گڼړو | او زمونږ (په دې)

بِمُسْتَيْقِنِيْنَ ۝ وَبَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا

يقين کونکي | او ښکاره به شي | هغوئ ته | ناکاروالي | دهغې عمل | چې کړي وو هغوئ

هيڅ يقين نشته | ......اودوئ چې کوم عملونه کړي وو هغه ټول به ورته ښکاره شي

وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝

او چاپيره به شي دهغوئ نه | هغه څه | چې وو هغوئ | په هغې پورې | چې ټوقې به ئې کولې

او په کوم څيزپورې چې به دوئ ټوقې کولې هغه به ورباندې واقع شي

وَقِيْلَ الْيَوْمَ نَنْسٰكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ

اواوبه ونيلي شي | چې نن ورځ به | مونږه هير کړو تاسو | لکه څنگه چې هير کړې وو تاسو

اودابه ورته اوونيلي شي | چې نن ورځ به مونږ تاسو داسې هير کړو | لکه څنگه چې تاسو

لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا وَمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ

ملاقات | دورځې ستاسو | چې داده | او ځاني داوسيدو ستاسو | وور دي | او نشته تاسو لره

دا ورځ هيره کړې وه |..اوستاسو د استوگنې ځائې دوزخ دې | اوستاسودپاره هيڅوک مددگار نشته

مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ۝ ذٰلِكُمْ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ

دمددگارانو نه (هيڅوک) | دا انجام ستاسو | په دې وجه شو چې بيشکه تاسو | نيولې وو| ايتونه دالله

........................ | دا څکه چې تاسو دالله ﷻ په ايتونو پورې ټوقې کولې | او

هُزُوًا وَّغَرَّتْكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُوْنَ

په ټوقو سره | او په دوکه کښې اچولي وئ تاسو | ژوند | ددنيا | پس نن ورځ | به نهٔ ايستلې کېږي دا خلق

ددنيا ژوند په دهوکه کښې اچولي وئ ا ............ نو نن ورځ به نه دوئ د دوزخ نه بهر راويستې

مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ۝ فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمٰوٰتِ

ددې دوزخ نه | اونهٔ به دهغوئ عذر قبليږي | پس الله لره ثنا ده | چې رب داسمانونو |

شي | او نه به ددوئ توبه قبلولې شي | نوټول تعريفونه دالله ﷻ دپاره دي | چې داسمانونو

وَرَبِّ الْاَرْضِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَلَهُ الْكِبْرِيَآءُ فِي السَّمٰوٰتِ

او رب دزمکې دي | رب دمخلوقاتو دي | او هغه لره لوئي ده | په اسمانونو کښې |

او زمکې اود ټول مخلوق رب دي | ............او په اسمانونو او زمکه کښې ټوله لوئي صرف دهغه

وَالْاَرْضِ ۖ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝

او په زمکه کښې | او هغه غالب | او حکيم دې |

دپاره ده | اوهغه غالب دې صاحب دحکمت دي

**قوله تعالى:: فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ**

**دقیامت په ورځ به رېښتوني فیصلې کیږي::** دې آیتونو کښې الله ﷻ دخپلو فیصلو خبر ورکوی چې کومې به هغه په آخرت کښې دخپلو بندګانو مینځ کښې کوی.کومو خلقو چې په زړه سره ایمان قبول کړواو په ښه زړه سره نیک عملونه اوکړل نوهغوئ ته به الله رب العزت په خپل کرم جنت ورکوی .درحمت نه مراد جنت دې.لکه څنګه چې صحیح حدیث پاک کښې دی چې الله رب العزت جنت ته اوفرمائیل چې ته څما رحمت ئې اوځه چې تاکښې څوک غواړم نو هغه به تا کښې داخلوم [1]ښکاره کامیابی اوحقیقی مراد حاصلول هم دا دی .اوچې کوم خلق ایمان نه روستو شواوکفر ئې اختیار کړو نو هغوئ ته به د قیامت په ورځ دغصې په طور اوونیلې شی چې آیا ستاسو به وړاندې دالله ﷻ آیتونه نه وو ونیلې شوی.بلکه یقینی طور ونیلې کیدل به او تاسو ته به آوریدلې کیدل خوتاسو غروراوکبر اوکړواودهغې اتباع مو اونه کړه دهغې نه مو مخ واړولوتاسو پخپل د الله ﷻ نافرمانئ سره سره په ښکاره هم دالله رب العزت نافرمانی اوکړه . ښه په بهادرئ سره به مو ګناهونه کول.اوچې تاسو ته به کله ایمان والواوونیل چې دالله رب العزت وعده رېښتونې ده او قیامت به ضرور رازی او ددې په راتلو کښې هیڅ شک نشته نو تاسو به الټه جواب ورکولو چې مونږ ته ددې معلومات نشته چې قیامت لا څه ته وائی ؟هسې خو مونږ داسې څه وهم شان کیږی خو بیا هم زمونږ یقین نه رازی چې ګنی قیامت په ضرور رازی.اوس هغوئ ته دهغوئ د بدوعملونو سزا ورکړېشوې د ه.پخپلو سترګو ئې د خپلو کړو سزا اولیدله او چې دکوم عذاب نه انکاری وو،کوم عذاب پورې به ئې خندګانې کولې اوچې کوم عذاب ئې ممکن نه ګڼړلو نو نن هم هغه عذاب راګیر کړی دی.اودوئ دهر قسمه نیکئ نه مایوسه کړې شو او ورته اوونیلې شو چې مونږ به تاسو سره هغه معامله اوکړو لکه چې څنګه څوک هیروی یعنی تاسو به جهنم ته داخل کړو. بیا تاسو هیڅکله په ښه شان سره نه یاد وؤ.دهغه کار بدله چې تاسو ددې ورځې ملاقات هیر کړې وو. تاسو په دې وجه هیڅ عمل اونه کړو ځکه چې تاسو ددې ورځې د صداقت قائل نه وې . اوس ستاسو ځائې جهنم دې او اوس هیڅوک نشته چې ستاسو سره مدد اوکړی .

**قوله تعالى:: وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنسَاكُمْ**

**قیامت کښې دالله ﷻ بنده ته انعامات وریادول:** صحیح حدیث پاک کښې دی چې آیا ما تاسو ته بچی نه وو درکړی ،آیا ما تاسو دنیا کښې انعام واکرام نه وو درکړی ؟ آیا ما اوښان او آسونه ستاسو تابع کړی نه وو؟اوتاسو مې پریخودی وې چې تاسو ښه په سکون اواطمینان سره په خپلو کورونو کښې ژوندتیروې.دې به جواب کښې اووائی چې ائې الله ﷻبیشکه داټول رښتیادی اوتاپه ماداټول احسانات کړی وو. الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې نن به تا هغه شان هیر کړم لکه څنګه چې دې څه هیر کړې اوم [2]

**قوله تعالى:: ذَٰلِكُم بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ**

**د قیامت سزا به په څه وجه وی؟:** بیا فرمائی چې تاسو دا سزاګانې په دې وجه درکولې شی چې تاسو دالله رب العزت آیتونو پورې توقې کولې . او تاسو ددنیا ژوند په دهوکه کښې اچولی وې اوتاسو په دې باندې مطمئن وې .اودومره بې غمه وې چې آخر نن تاسو په نقصان اوخساره کښې یئ .اوس به تاسو ددوزخ نه شئ ویستلې اونه به ستاسو نه زمونږ د خفګان څه وجه پوښتلې شی یعنی ددې عذاب نه

[1] صحیح بخاری کتاب التفسیر سورة ق باب قوله (( تقول هل من مزید) : ۴۸۵۰، صحیح مسلم: ۲۸۴۶، ترمذی : ۲۵۶۱، احمد:۲/۴۵۰.

[2] صحیح مسلم کتاب الزهد باب الدنیا سجن للمومن وجنة للکافر: : ۲۹۶۸

ستاسو بچ کیدل ممکن نه دی اوتاسو لره خمارضا هم ممکن نه ده .لکه څنګه چې یو مومن بې حسابه جنت ته داخلیږی نو داشان به تاسوته عذاب درکولې شی اوستاسو توبه به سودمنده نه وی.

قوله تعالی:: فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَرَبِّ الْاَرْضِ.

اخر کښې دالله ﷻ تعریفونه او لوئی:: مومنانو اوکافرانو ته خپلې فیصلې آورولونه پس اوس الله ﷻ فرمان کوی چې ټول حمدونه ، زمکې ، آسمانونه الله رب العزت دپاره دی ،د هرڅیز مالک الله ﷻ دي ، اوهغه ذات دټول جهان پاللو والا دې،آسمانونو او زمکې کښې هم دهغه ذات لوئی او کبریائی ده .هغه ډیر عظمت اوبزرګۍ والا دې.دهر یوڅیز دهغه په مخکښې پست دي اودهغه ذات محتاج دي.صحیح مسلم کښې حدیث قدسی دې چې الله رب العزت فرمائی چې عظمت څما تهبند دي او کبریائی څما څادر دې . چې کوم سړې دې کښې یو هم څما نه اخلی نو څه به هغه جهنم ته داخل کړم(۱)یعنی څوک چې کبر او لوئی کوی نوهغه جهنمی دې .هغه ذات عزیز دې یعنی غالب دې اوهغه هیڅکله نه مغلوب کیږی . هیڅوک داسې نشته چې دهغه په مخکښې څه وائی .هغه حکیم ذات دې دهغه هیڅ یو قول ، هیڅ یو فعل ، د هغه دشریعت هیڅ یو مسئله ، دهغه د تقدیر لیکلې شوې یو حرف هم دحکمت نه خالی نه دې . هغه ډیر اوچت او لوئې دې .دهغه نه سوا هیڅوک معبود نشته دې.دهغه نه سوا هیڅوک مسجود نشته دې.

الحمد لله د پنځویشتمې پارې تفسیر ختم شو .

..................

(۱) صحیح مسلم کتاب البر والصلة باب تحریم الکبر: ۲۶۲۰، ابوداود : ۴۰۹۰، ابن ماجه: ۴۱۷۴، احمد: ۴۱٤/۲.